# تسهيل الهداية

## پښتو شرح د هِدايه

مع

المراة الصافيه لتخريج احاديث الهداية

الأقوال الراجحة في مسائل الهداية

حل لغات الهداية

تاليف


مولانا پروفيسر شاه فيصل

فاضل امداد العلوم



فيصل كتب خانه

محله جنگي پيښور

نوی تصحیح شده او اضافه شده ایډیشن

# تسهيل الهداية

## په قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کې شرح

# هدايه

جلد: ⑤

**تاليف**: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامداد العلوم

### خصوصیات او اضافات

① په هدایه کښې ذکرشوې حدیث باندې لاندې حاشیه کښې د هغې تخریج

② داحنافو په مینځ کښې په مختلف فیها مسئله کښې د راجح قول تعین

③ د قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کډون او امتزاج

④ د هدایه د مشکلو لغاتو حل

⑤ دهدایه متن ته اعراب ورکول

⑥ د مضمون په لحاظ سره د هدایه متن تقسیمول

⑦ د هدایه د هرې جملې سره متصل دهغې ترجمه

⑧ د هدایه عبارتونو ته د موضوع په لحاظ سره عنوانات ورکول

⑨ شرحې ته په عربیٔ ژبه کښې مناسب عنوانات ورکول

⑩ د کتاب په اول کښې د فقه په ضروری مباحثو مشتمله جامع مقدمه

**ناشر**

**فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵**

**دکتاب نوم**: تسهيل الهدايه شرح هدايه پښتو

**تاليف**: مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس وامدادالعلوم

**د ملاويدو پته**:

**فيصل کتب خانه محله جنګي پېښور ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵**
رشيديه کتب خانه اکوړه خټک ۰۳۳۳۹۱۵۸۴۷۷
علميه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
مکتبه رحمانيه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۶۰۴۹
مکتبه عثمانيه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
مکتبه عرفان کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۲۱۳۱۶
مکتبه يوسفيه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
مکتبه طيبه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۲۲۶۹۵
مکتبه حرمين کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۰۱۹۳۱
مکتبه علوم اسلاميه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۹۱۹۵
راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
مکتبه حقانيه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
**صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۶۱**
**قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳**
**عبدالمجيد کتب خانه جلال اباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹**
اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷
مکتبه فاروقيه پېښور ۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵
مکتبه رشيديه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
مکتبه معروفيه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۹۰۷۳۹۸


**د قندهارۍ او يوسفزۍ پښتو**

هغه ټکی کوم چه د يو بل څخه مختلف دی مونږ د قوسينو په مينځ کښې قندهاری ټکی ته يوسفزی ټکې ليکلې دې اودغه شان د دې برعکس البته کوم ټکی چې کثير الاستعمال دی نو په هغې کښې مو يا صرف په قندهارۍ پښتو بسوالې او اکتفاء کړې ده يا په يوسفزۍ پښتو مثلا مونږ او موږ، قسم او ډول وغيره دغه شان کوم ټکی چې مکرر راغلی دی نو په اول ځل مو په څو مقاماتو کښې د دواړو ژبو ټکی ليکلی دی او بيا مو صرف په يوه ژبه اکتفاء کړې ده په دې طريقه يو طالب علم په دې کتاب کښې د يوسفزۍ او قندهارۍ دواړو لغاتو پوهه حاصلولې شی کوم چې ده ته په نورو کتابونو کښې هم مدد ورکولې شی

**د مزيد تفصيل دپاره په اول جلد کښې مقدمه ضرور اوګورۍ**



# کتاب البيوع

ژباړه:- (دا) کتاب د بيوع (د احکامو په بيان کي) دي.

**تشريح**:- صاحب دکتاب اول خالص عبادات يعنی لمونځ ،وغيره بيان کړو.بيا ئې د نکاح بيان اوکړو کوم چې من وجه عبادت اومن وجه معامله ده.اوس خالص معاملات بيانوی يعنی بيع اوشفعه وغيره.او د کتاب الوقف اوکتاب البيوع په مينځ کي مناسبت دا دې چې هريودمالك ملك زائل کوی. يعنی لکه څنګه چې د وقف نه د واقف ملکيت زائله کيږی دغه ډول به بيع سره د بائع ملك زائله کيږی

**السوال**◎ لفظ د بيع مصدر دې.اود مصدر تثنيه او جمع نه راځی.حالانکه دلته کي بيوع د جمع په صيغه سره ذکر شوې دې.

**الجوابان**◎ ① بې شکه مصدر دې.خود بيع مختلف انواعو په وجه دا دجمع په صيغه سره ذکر سرې دي.

② ،،بيع ،، د مبيع اسم مفعول په معنی کي دې.اود مبيعات ډير قسمونه او انواع دی.په دې وجه دا د جمع په صيغه سره ذکر شوې دې.

**تشريح لفظ البيع**◎ لفظ د ،،بيع،، د اضدادو څنې دې. ① په لغت کي د بيع لفظ د ﴿ادخال الشئ في الملك بمال﴾ لپاره ونيلې شی. ② اود ﴿اخراج الشئ عن الملك بمال﴾ يعنی د مال په عوض سره يوځيز په ملك کي د داخلو لپاره هم ونيلې شی.او دمال په عوض څه شئ د ملك نه د ويستلو ته هم ونيلې شی.
په حديث

**دليله**◎او په حديث ﴿لايبيع أحدكم على بيع أخيه﴾ کي اوله معنی(اخستل) مراد ده. يعنی په تاسو کي دې هيڅ يوکس د خپل رور د اخستلو په صورت کي نه اخلی مطلب دادې.که يو مسلمان رور د يو شئ د اخستلو په اراده سره نرخ کوی.نو تاسو ددې د اخستلو په اراده سره په مينځ کي مه راځئ.اوګورئ. دلته کي بيع د اخستلو په معنی کي استعمال شوې دې. ﴿اذا اختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم﴾ کي دويمه معنی (خرڅول) مراد دی.

**استعمال لفظ الشراء في الاضداد**◎ دغه ډول لفظ د ،،شراء،، او ،،اشتراء،، د اضدادو څنې دی.يعنی دا لفظ هم د خرڅولو او اخستلو په معنی کي مشترك دی.مثلاً ① ﴿وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ﴾ کي هم په دې معنی کي استعمال شوې دې.يعنی ،، ډير بد شئ دې.چه د هغې په بدله کي خرڅ کړو دوی خپل ځان،، (البقره۲: ۱۰۲) دغه ډول لفظ د شراء او اشتراء په ډيرو آياتونوکي د اخستلو په معنی کي استعمال شوې دې.مثلاً ② ﴿وَاشْتَرَوْا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ﴾ ،،او وانې خستلو ددې په بدله کي لږشان مال،نو څومره بد دې.هغه چې دوی ئې اخلی،، په دې کي اشتراء په معنی د اخستلو کي مستعمل دې

**تعريف البيع اصطلاحاً**◎ د شريعت په اصطلاح کي ،،بيع،، ﴿مبادلة المال بالمال بالتراضي بطريق التجارة﴾ ته وانی.يعنی ،د يوبل په رضامندئ سره د تجارت په طريقه باندې مال د مال په بدله کي اخستل،،

**فائدة القيودات**◎ د ﴿مبادلة المال بالمال﴾ په قيد سره اجاره او نکاح خارج شو.ځکه چې په اجاره کي ﴿مبادلة المال بالمنافع﴾ وی.او په نکاح کي ﴿مبادلة المال بالبضع﴾ وی.اود ﴿بالتراضي﴾ په قيد سره د مکره بيع خارجه شوه.ځکه چې مقصود نافذه بيع بيانول دی.او ،،مبادلة بلا تراضی،، شرعی بيع نه ده. د ﴿بطريق التجارة﴾ په قيد سره ،،هبه بشرط العوض ،،خارجه شوه.ځکه چې په،، هبه بشرط العوض،، کي هم ﴿مبادلة المال بالمال﴾ وی.خو د تجارت په طريقه باندې نه وی.دا خيال سائل پکار دی.چه په تعريف کي د مبادله نه مراد تمليك دې.يعنی د مال په بدله کي د مال مالك کول.د بيع مشروع کيدل د قرآن،حديث ،او اجماع درې وارو نه ثابت دی.

**ثبوته من الکتاب:** د قرآن نه ددې ثبوت په دې آیت سره کیږي ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَوٰا﴾ ،،الله تعالی حلال کړې ده بیع ،او حرام کړې ئې دې سود،، دا آیت د بیع په جواز باندې دلالت کوی.

**ثبوته من السنة:** د حدیث نه د دې ثبوت ① ﴿عن ابي سعيد عن النبي ﷺ قال التاجر الصدوق الأمين مع النبيين والصديقين والشهداء﴾ ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی چه رسول اکرم ﷺ فرمائیلی دی چه رشتونی او امانت داره سوداګر به (د قیامت په ورځ) نبیانو ، صدیقینو ، او شهیدانو سره وی. (ترمذی ج١ص٢٢٩).

**طریق الاستدلال:** په دې روایت کې د رشتونی او دیانت داره سوداګر مقام او مرتبه بیان شوې ده.او دده تعریف شوې دې.دې واړه روایتونه د تجارت اود بیع په جواز باندې دلالت کوی.

**ثبوته من الاجماع:** اجماع هم د بیع په جواز باندې دلالت کوی.ځکه چې د رسول الله ﷺ د زمانې واخله، ترننه پورې واړه مسلمانان د بیع په جواز باندې متفق راروان دی.لکه چې سیرت نګارو لیکلی دی.چه د نبوت نه پنځلس کاله وړاندې نبی کریم ﷺ د ام المؤمنین حضرت خدیجة الکبری رضی الله عنها لپاره تجارت کړې وو.اواکابرو اصحابو،تولو تجارت کړې دې.لکه چې حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د کپړو سوداګر وو.او حضرت عمر رضی الله عنه د غلې سوداګر وو.حضرت عثمان رضی الله عنه کپړو، اود کجورو تجارت کولو. ملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقایه کې لیکلی دی.چه احنافو عالمانو فرمائیلی دی.چه د جهاد نه روسته د ټولو نه بهتره کته تجارت دې.بیا زمینداری ده.بیا صنعت وحرفت (هنراوفن) دې. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی.چه زما په نیز افضل کسب کتابت (خوشخطه لیکل) دې.

**سببه:** د بیع مشروع کیدلو سبب ﴿تعلق البقاء المعلوم لله تعالی علی وجه جمیل﴾ دې.یعنی ،،کوم ژوند چې الله تعالی ته معلوم دې.دا په ښه طریقه باندې پاته سائل دی.ددې مطلب دادې.چه د ژوند د بقاء لپاره د کوموخیزونو اړتیا وی.دا واړه څه د یوکس په کور کې نه تیاریږی.بلکه یو ډول سامان یو کس تیاروی.او بل ډول سامان بل څوك تیاروی.نود ژوند د ضروریاتو د پوره کاوه لپاره هرکس د بل محتاج دې.اوس د بل کس نه د خپلو ضروریاتو شیان حاصلول، به یا په حرام طریقه باندې وی.یا به په حلال طریقه باندې وی.په حرام طریقه سره حاصلول خو شرعاً ممنوع دی.په دې وجه د بیع حلال طریقه مشروع کړې شوه.

**حکمه:** د بیع حکم ملك دې.یعنی مشتری ته د،، مبیع ،،په تصرف باندې قدرت ورکول.

**رکنه:** د بیع رکن ایجاب او قبول دې.ایجاب هغه کلام دې.کوم چې وړاندې اوویلی شی.که د بائع د اړخه وی.او که د مشتری د اړخه وی.او ددې متعلق دوهم کلام ته قبول وائی.

**شروط جوازه:** د ،،بیع ،، دجواز شرطونه دا دی ① د عاقد عاقل کیدل ② د مبیع مال متقوم،او مقدور التسلیم کیدل.

**اقسامه باعتبارالذات:** بیع د ذات په اعتبار سره ددې څلور قسمونه دی.① بیع نافذ ② بیع موقوف ③ بیع فاسد ④ بیع باطل.ـددې څلورو واړو قسمونو احکام به په خپلو موقعو باندې ذکرکولې شی.

**اقسامه بحسب المبیع:** د مبیع په اعتبار سره هم د بیع څلور قسمونه دی.① بیع مطلق، یعنی بیع العین بالثمن ② بیع مقائضه، یعنی بیع العین بالعین ③ بیع صرف، یعنی بیع الثمن بالثمن ④ بیع سلم، یعنی بیع الدین بالعین.

**اقسامه بحسب الثمن:** اود ثمن په اعتبار سره هم څلورقسمونه دی.① بیع مرابحه، یعنی د ثمن اول نه په زیاتی عوض باندې خرڅول ② بیع تولیه، یعنی د ثمن اول په عوض باندې خرڅول ③ بیع وضیعه، یعنی د ثمن اول نه په کم عوض باندې خرڅول ④ بیع مساومه، یعنی د هغه ثمن په عوض باندې خرڅول،په کوم چې عاقدین اتفاق اوکړی.

### په بیع کښې د ایجاب او قبول شرعي حیثیت

> الْبَيْعُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ فرمائی.چه بیع په ایجاب او قبول سره متحقق کیږی إِذَا كَانَا بِلَفْظِ الْمَاضِي .چه کله



> دواړه د ماضی په دوې (دوه) لفظونو سره وی

**حل اللغة:** ① ينعقد،انعقاد، منعقد کیدل ② قبول، قبلول ③ بیع ، خرڅول ④ اشتراء ، اخستل

**تشریح:-** ،انعقاد،، په عاقدینوکې د یوکس کلام د بل کس کلام سره شرعاً په داسې طریقه متعلق کیدل،چه ددې اثر په محل، یعنی په مبیع کې ښکاره شی.یعنی مبیع د بائع دملك نه اوځی.اود مشتری په ملك کې داخل شی.

**معنی الایجاب والقبول:** د ایجاب معنی اثبات ده.ځکه چې دا د بل کس لپاره خیارقبول ثابتوی.نو هرکله چې دوهم عاقد دا قبول کړلو.نو دده د کلام نوم به قبول وی.حاصل داچه د عاقدینو نه ړومبې صادرکیدونکې کلام ته ایجاب، او ثانیاً صادریدونکی کلام ته قبول وائی.

> مِثْلُ أَنْ يَقُولَ أَحَدُهُمَا بِعْتُ مثلاً په دې دواړوکې یوکس اوونیل چه ما خرڅ کړو وَالْآخَرُ اشْتَرَيْتُ.او دوهم اوونیل ما واخستلو.

**تشریح:- صورته:** صورت د مسئلې دادې چه ،،بیع،، د ایجاب او قبول نه متحقق کیږی.په دې شرط چې د دواړو نه د ماضی په صیغې سره تعبیر کړې شوې وی.مثلاً یوکس اوونیل. ﴿بعت﴾ یعنی ،،ما خرڅ کړو،، او دوهم کس اوونیل. ﴿اشتریت﴾ ،، ما واخستلو،،نو بیع منعقد کیږی.

> لِأَنَّ الْبَيْعَ إِنْشَاءُ تَصَرُّفٍ، وَالْإِنْشَاءُ يُعْرَفُ بِالشَّرْعِ دلیل دا دې چې بیع د تصرف انشاء ده.اود انشاء کیدل د شریعت نه معلومیږی وَالْمَوْضُوعُ لِلْإِخْبَارِ قَدْ اُسْتُعْمِلَ فِيهِ فَيَنْعَقِدُ بِهِ.اوکومه صیغه چې د خبر ورکاوه لپاره موضوع وی.هم دغه په انشاء کې مستعمل ده.ځکه به بیع په دې صیغه سره منعقد کیږی.

**تشریح: دلیله:** بیع د داسې تصرف نوم دې.چه د ،،انشاء،، د قبیلې څخه وی.او انشاء کیدل په شریعت سره معلومیږی.اود ماضی صیغه اګرچه د اخبار لپاره موضوع ده. خو شریعت دا د انشاء په معنی کې استعمال کړې ده.په دې وجه د ماضی په صیغې سره بیع منعقد کیږی.

**دلیل کون البیع من قبیل الانشاء:** بیع د انشاء د قبیلې څخه دې،چه انشاء وائی. ﴿إثبات مالم یکن﴾ ته. یعنی غیر موجود ثابتولو نوم انشاء ده.او دا تعریف په بیع باندې صادقیږی.ځکه چې د بیع په ذریعه هم غیر موجود اوغیر ثابت شئ ثابتیږی. یعنی په مبیع باندې د عقد بیع نه وړاندې دمشتری ملك ثابت نه وو.او په ثمن باندې د بائع ملك ثابت نه وو. خود بیع په ذریعه دا دواړه ثابتولې شی.نو د بیع په ذریعه چونکه یو غیر ثابت شوې شئ ثابتولې شی.په دې وجه به بیع د انشاء، د قبیلې څخه وی.

> وَلَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظَيْنِ او بیع په داسې دوې (دوه) لفظونو سره نه منعقد کیږی. أَحَدُهُمَا لَفْظُ الْمُسْتَقْبَلِ چې په دې کې یولفظ مستقبل وی.

**تشریح:- ماینعقد به البیع:** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه په داسې دوې (دوه) لفظونو سره بیع نه منعقد کیږی.چه په دې کې یو د مستقبل صیغه وی.او دوهم د ماضی صیغه وی.

**المراد من المستقبل والمذهبان فیه:** د هدایه بعضو شارحینو فرمائیلی دی.چه د مستقبل نه مراد فعل مضارع ده.یعنی که په عاقدینوکې یو کس په فعل مضارع سره تلفظ اوکړو.او دویمه په فعل ماضی سره تلفظ اوکړو.نو بیع به نه منعقد کیږی.

**دلائله:** ① دادې. چې فعل مضارع که د بالغ د اړخه وی.مثلا ده اوونیل. ﴿أبیع﴾ یعنی ،، زه به خرڅوم،،او مشتری ﴿اشتریت﴾ اوونیل.نو دا به د بائع د اړخه صرف وعده وی.او په وعدې سره بیع نه منعقد کیږی.بلکه په هغه لفظ سره منعقد کیږی.کوم چې د وجود په تحقق باندې دلالت کوی.او که د فعل مضارع تلفظ د مشتری د اړخه وی.مثلا بائع اوونیل.چې ،، ما خرڅ کړل،، او مشتری په خواب کې اوونیل.چه ،، زه به اخلم،،نو دا نرخ

کول شو بیع منعقد کول نشو. ⑦ ځکه چې رسول اکرم ﷺ د بیع د انعقاد لپاره د ماضي صیغه استعمال کړې ده.د فعل مضارع صیغه ئې نه ده استعمال کړې.په دې وجه به د بیع انعقاد په ماضي باندې منحصره وي.

⑦ځه شارحین فرمایي چې د لفظ ،،المستقبل،، نه د امر صیغه مراد ده.او قرینه په دې باندې د هدایه عبارت ﴿

بخلاف النكاح﴾ دی.

دليله⑧ځکه چې د کتاب النکاح ابتدائی عبارت ﴿وينعقد بلفظين يعبر بأحدهما عن الماضي وبالآخر عن المستقبل مثل أن يقول زوجني﴾ کې د المستقبل نه مراد د امر صیغه ده.اوس حاصل دا شو چه د بیع په عاقدینو کې که یو کس د ماضي په صیغې سره تکلم اوکړو.او دوهم د امر په صیغې سره تلفظ اوکړو.نو بیع به نه منعقد کیږي.مثلا یو کس اووئیل ﴿بعني هذا العبد بالف﴾ ،،دا غلام په ما باندې د زرو روپو په بدله کې راخرڅ کړه،، دوهم کس اووئیل ﴿بعتك﴾ ما دا غلام د زرو روپو په عوض کې درخرڅ کړو.نو په دې سره بیع نه منعقد کیږي.

> بِخِلَافِ النِّكَاحِ،وَقَدْ مَرَّ الْفَرْقُ هُنَاكَ په خلاف د نکاح،او توپیر په کتاب النکاح کې بیان شو.

تشریح:- ددې په خلاف نکاح ده.که سړې ښځې ته مخاطب شو او وې وئې. ﴿زوجني﴾ ته ما سره نکاح اوکړه.یا ته زما نکاح اوکړه.دې اووئیل. ﴿زوجتك﴾ ما تا سره نکاح اوکړله.یا ما ستا نکاح اوکړله.نو په دې سره نکاح منعقد کیږي.دې

وجه الفرق بينهما⑧دواړو په مینځ کې وجه د توپیر داده.چه د ،،زوجني،، لفظ توکیل بالنکاح دې.او د بعني لفظ توکیل بالبیع دې.او یو سړې د نکاح د دواړو طرف.یعني د ایجاب او قبول ولي جوړیدلې شي.خو په بیع کې یو سړې دواړه نشي کولې.وجه دا ده.چه په بیع کې چونکه د بیع حقوق وکیل ارخ ته واپس کیږي.او په نکاح کې وکیل ارخ ته نه واپس کیږي.بلکه د موکل ارخ ته واپس کیږي.په دې وجه که په بیع کې یو سړې د طرفینو، یعني د ایجاب او قبول ولي شو.نو هم دیو سړي به مطالب (مطالبه کونکې) او مطالب (د کوم کس نه چې مطالبه کیږي) او مملك (مالك جوړونکې) او متملك (مالك جوړیدونکې) کیدل لازم شي.حالانکه د یو سړي مطالب او مطالب،مملك، او متملك دواړه کیدل ناجائز او ناممکن دي.او دا به په دې طریقه لازمیږي.

صورته⑧ چې مثلاً دخالد د ارخه نې د وکیل په حیثیت سره ایجاب اوکړو.او د خپل ارخه نې د اصیل په حیثیت سره قبول کړلو.یعني ایجاب او قبول دواړه حامد یعني د وکیل د ارخه اوموندې شو.نو چونکه د بیع حقوق وکیل ارخ ته واپس کیږي.په دې وجه ددې کتاب مالك جوړونکې به هم حامد وي.ځکه چې هغه وکیل بالبیع دې.او مالك جوړیدونکې به هم دا حامد وي. ځکه چې دې دخپل خان د ارخه اصیل یعني مشتري دې.او د ثمن مطالبه کونکې هم حامد دې.ځکه چې دې د بائع وکیل دې.او مطالبه به هم د خپل خان نه پخپله کوي.ځکه چې دې پخپله مشتري دې.نو د یوکس مطالب، مطالب،مملك، او متملك کیدل په دې وجه لازم شو.چه هم دا یوکس د ایجاب او قبول د دواړو ولي دې.او د دواړو ولي کیدل ځکه لازم شو.چه په عاقدینوکې یو د امر د صیغې په ذریعه وکیل جوړ کړې دې.نو ثابته شوه.چه ددې واړه فساد دارومدار د امر په صیغې باندې دې.په دې وجه موږ وایو.چه په عاقدینوکې هر یوکس به د ماضي په صیغه باندې تلفظ کوي.که یو کس د ماضي په صیغه باندې او دوهم د امر په صیغه سره تلفظ اوکړو.نو د فساد د ذکر شوو وجوهو په وجه به بیع نه منعقد کیږي.او په نکاح کې چونکه حقوق د نکاح موکل ارخ ته واپس کیږي.په دې وجه د یوکس مطالب، مطالب، مملك او متملك کیدل نه لازمیږي.مثلاً یوکس د امر په صیغه سره یوه ښځه د خپلې نکاح وکیله جوړه کړله.او وې وئیل چه ﴿زوجني﴾ ته زما نکاح اوکړه.او ښځې خپل خان سره نکاح اوکړله او وې وئیل. ﴿تزوجتك﴾ ما تا سره نکاح اوکړله.نو دا نکاح منعقد کیږي.اګرچه ایجاب او قبول دواړه د ښځې د ارخه موجود شو.ځکه چې د نکاح حقوق، چونکه د موکل ارخ ته



واپس کیږي.په دې وجه داسې نشي کیدلې.چه د بضع مطالبه کونکې ښځه وي.او مطالبه هم ددې نه وي.بلکه مطالبه کونکې به موکل یعني میړه وي.او د کوم کس نه چې مطالبه کیږي.هغه به ښځه وي.دغه ډول د مهر مالك جوړونکې به میړه وي.او مالك جوړیدونکې به ښځه وي.نو چونکه په نکاح کې یو سړي مطالب، مطالب، مملك او متملك کیدل نه لازمیږي.په دې وجه په نکاح کې یو سړي ته د طرفینو د نکاح ولي جوړیدلو اجازت ورکړې شوې دې.نو هرکله چې په نکاح کې یو سړې د نکاح د طرفینو ولي جوړیدلې شي.نو د نکاح په عقد کې یو کس ته د ماضي په صیغه او بل کس ته د امر په صیغه سره د کلام کاوه هم اجازت شته.

> وَقَوْلُهُ رَضِيتُ بِكَذَا أَوْ قَوْلُ قَالَ اود قائل قول رضيت بكذا زه د دومره قیمت په عوض راضي یم أَوْ أَعْطَيْتُكَ بِكَذَا یا أعطيتك بكذا ما د دومره قیمت په عوض تاته درکړو أَوْ خُذْهُ بِكَذَا یا خذه بكذا ته دا د دومره قیمت په عوض واخله فِي مَعْنَى قَوْلِهِ بِعْتُ وَاشْتَرَيْتُ .دده د قول ،،بعتُ،، او،، اشتریتُ،، په معنی کې دی.

حل اللغة: ①الرضا:راضي کیدل، ②الاعطاء:ور کول، ③الاخذ:اخستل، ④الاداء:ور کول

تشریح:- انعقاد البيع بكل ما يدل على معنى البيع والشراء⑧ علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د بیع انعقاد په لفظ د ،،بعتُ،،او ،،اشتریت،، کې منحصر نه دې.بلکه هر هغه لفظ چې د ،،بعتُ،، او ،،اشتریت،، په معنی باندې دلالت کوي.په دې سره بیع منعقد کیږي.① لکه مثلاً که یو کس اووئیل. ﴿بعت منك هذا بكذا﴾ ،،ما ستا نه دا شې د دومره روپو په عوض خرڅ کړو،،ده په خواب کې ﴿رضيت﴾ یعني ،زه راضي یم،اووئیل.نو بیع به منعقد وي.②یا مثلاً یو کس اووئیل. ﴿أعطيت المبيع بكذا﴾ ما مبیع په دومره قیمت کې درکړو،، دوهم کس اووئیل. ﴿اشتريت يا قبلت﴾ نو بیع به منعقد وي. ③یا مثلاً یوکس اووئیل. ﴿اشتريت هذا منك بكذا﴾ دوهم په خواب کې اووئیل. ﴿خذه﴾ یعني واني خله.په دې صورت کې به هم بیع منعقد وي.

> لِأَنَّهُ يُؤَدِّي مَعْنَاهُ دلیل دا دې چې ددې نه هم دغه معنی حاصلیږي وَالْمَعْنَى هُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي هَذِهِ الْعُقُودِ او په دې عقود کې معنی معتبر وي.

تشریح:- ددې دلیل دادې.چې ذکر شوی الفاظ د ،،بعت،، او ،،اشتریت،، په معنی باندې دلالت کوي.او په دې عقود شرعیه کې هم معنی معتبره وي.په دې وجه دې الفاظو سره هم بیع منعقد کیږي.

> وَلِهَذَا يَنْعَقِدُ بِالتَّعَاطِي هم په دې وجه تعاطي سره منعقد کیږي فِي النَّفِيسِ وَالْخَسِيسِ او.(که مبیع) نفیس وي.او که خسیس وي.( یعني که اعلی وي،اوکه بې کاره وي) هُوَ الصَّحِيحُ لِتَحَقُّقِ الْمُرَاضَاةِ هم دا صحیح ده.ځکه چې خپل منځ کې رضامندي اوموندې شوه.

①المراضاة:دجانبینو د ارخه رضا کیدل ②التعاطي:یوبل ته ورکول③النفيس:ښه څیز④الخسيس:خراب څیز

تشریح دلیل دا دې چې په دې عقودوکې د معنی اعتبار کولې شي.په دې وجه بیع تعاطي جائز ده.بیع تعاطي دې ته وائي.چه د ایجاب او قبول نه بغیر د مبیع او د ثمن لین دین (اخستل خرڅول) کول،یعني که بائع مشتري ته مبیع ورکړي.او مشتري ده ته ثمن ورکړي.او د دواړو د ارخه کلام قطعا نه وي. نودا بیع به منعقد کیږي.ځکه چې په دې صورت کې ایجاب او قبول اګرچه نه دې موجود شوې.خود بیع معنی موجود شوې ده. په دې وجه به دا بیع هم صحیح وي.

## د خیار قبول حکم

> قَالَ وَإِذَا أَوْجَبَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ الْبَيْعَ امام قدوري قدوري رحمه الله فرمائي.چه کله په متعاقدینوکې یوکس د بیع ایجاب اوکړو. فَالْآخَرُ بِالْخِيَارِ نو دوهم ته اختیار دې. إِنْ شَاءَ قَبِلَ فِي الْمَجْلِسِ که غواړي.نوهم په دې مجلس کې دې قبول اوکړي وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ، وَهَذَا خِيَارُ الْقَبُولِ .اوکه خیارقبول دې غواړي.نو رد دې کړي.اودا خیار قبول دې

حل اللغة:- ①وجوب:واجب کیدل②المتعاقدين: تثنیه د عاقد ،معامله کونکې③قبل: وړاندې ④الخيار: اختیار

**تشريح:- معنى خيار القبول**﴿ صورت د مسئلې دادې چه هر کله په متعاقدينوکې يو کس د بيع ايجاب اوکړو. مثلاً بائع اووئيل چې ﴿بعتك هذا بكذا﴾ ما دا سامان د دومره ثمن په عوض خرڅ کړلو. نو دوهم کس يعنى مشترى ته په مجلس کې دننه د قبلولو اود رد کاوه اختيارشته دې. يعنى که غواړى. نو دا بيع دې قبول کړى. او که غواړى. نو رد دې کړى. د فقهاؤ په اصطلاح کې ددې اختيار نوم خيار قبول دې.

**لِأَنَّهُ لَوْلَمْ يَثْبُتْ لَهُ الْخِيَارُ** ځکه که ده ته د قبوليت اختيار حاصل نه وى **يَلْزَمُهُ حُكْمُ الْبَيْعِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ** نو دده د رضامندئ نه بغير به د بيع حکم لازميږى **وَإِذَا لَمْ يُفِدِ الْحُكْمَ بِدُونِ قَبُولِ الْآخَرِ** او کله چې دې ايجاب د دوهم کس د قبول نه بغير د حکم مبيع فائده ورنکړله **فَلِلْمُوجِبِ أَنْ يَرْجِعَ** نو ايجاب کونکى ته د رجوع کاوه اختيار دې. **لِخُلُوِّهِ عَنْ إِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ** ځکه چې د ايجاب کونکى د ايجاب نه رجوع کول د غيرحق باطلولو نه خالى دې.

**حل اللغة:-** ① اثبات: حاصلول ② لزوم: لازم کيدل ③ دون: بغير ④ رجوع: واپس کيدل

**تشريح:-** ددې خيار دليل دادې. که د ايجاب کونکى نه علاوه بل چاته ته د قبلولو اود رد کاوه اختيار نه وى. نو په دې دواړو کې به يوکس مجبوره وى. او هر کله چې دې مجبوره شو. نو دده رضامندى فوت شوه. حالانکه د بيع انعقاد لپاره د بائع او مشترى دواړو رضامندى ضرورى ده. په دې وجه به ده ته خيار قبول حاصل وى.

**خيار الرجوع من الايجاب**﴿ او هر کله چې د احد المتعاقدين ايجاب د دوهم کس د قبلولو نه بغير د حکم او ملك مفيد نه دې. نو د ايجاب کونکى لپاره اختيار دې. چه دې د آخر (دوهم کس) د قبلولو نه وړاندې د خپل ايجاب نه رجوع اوکړى. ځکه چې صرف په ايجاب سره د مشترى لپاره په مبيع کې نه ملك ثابتيږى. او نه د ملك حق ثابتيږى. نو هر کله چې دواړه خبرې نشته. نود موجب (د ايجاب کونکى) په رجوع کولوسره د غير ابطال حق، يعنى د مشترى حق باطلول نه لازميږى. او هر کله چې د چاحق باطلول نه لازميږى. نو د موجب د خپل ايجاب نه په رجوع کولو کې هيڅ باك نشته.

**وَإِنَّمَا يَمْتَدُّ إِلَى آخِرِ الْمَجْلِسِ** او خيار قبول د مجلس آخر پورې ځکه اوږديږى **لِأَنَّ الْمَجْلِسَ جَامِعُ الْمُتَفَرِّقَاتِ**. چې مجلس متفرق شيان جمع کونکى دې **فَاعْتُبِرَتْ سَاعَاتُهُ سَاعَةً وَاحِدَةً دَفْعًا لِلْعُسْرِ وَتَحْقِيقًا لِلْيُسْرِ** نود سختئ لرې کاوه لپاره اود آسانئ ثابتولو لپاره د مجلس واړه ساعتونه يوه ساعت شمارلې شى.

**حل اللغة:-** ① امتداد: اوږدول، ② ساعة: لمحه، ③ العسر: سختى، ④ اليسر: آسانى

**تشريح:- وجه تخصيص الخيار بالمجلس**﴿ ﴿وإنما يمتد إلى آخر المجلس....الخ﴾ په دې جملې سره د يو تقديرى سوال ځواب دې. سوال دادې چه د مشترى د رد او قبول اختيار مجلس سره ولې خاص کړې شوې دې. ځواب: عقلى طور باندې درې صورتونه دى. ① يو خو داچه د ايجاب نه فوراً روسته قبلول لازم اوګرځولې شى. که فوراً ئې قبول نه کړى. نو ايجاب به باطل وى. ② دوهم صورت دادې. چه قبلول په آخر د مجلس باندې موقوف کړې شى. يعنى مشترى ته دا اختيار ورکړې شى. چه په مجلس کې قبول اوکړى. يا د مجلس نه روسته قبول اوکړى. په دواړو صورتونوکې به بيع تام وى. ③ دريم صورت دادې. چه خيار آخر د مجلس پورې پاتـه اوساتلې شى. اود مجلس ختمېدلو نه روسته خيار قبول پاتـه نشى.

**اليسر في الصورة الثالثة**﴿ په دې دريم صورت کې د دواړو لپاره آسانى ده. ځکه چې مشترى ته هم په مجلس کې د غور اوفکر موقع ملاويږى. او بائع به هم ډير زيات انتظار نه کوى.

**نظيركون المجلس جامع للمتفرقات**﴿ مجلس متفرق شيان جمع کونکې هم دې. مثلاً که يوکس په يو مجلس کې د سجدې آيت باربار تلاوت کړلو. نو هم يوه سجده به واجب وى. نو د بائع او مشترى نه د تنګئ لرې کولو، اود آسانتيا پيدا کاوه لپاره د مجلس واړه ساعتونه (لمحات) په منزله د يو ساعت دى. او آخر د مجلس پورې ځواب ورکول به د ايجاب نه فورا روسته د ځواب پشان وى. په دې وجه به خيار قبول د مجلس آخره پورې پاتـه وى.



**وَالْكِتَابُ كَالْخِطَابِ** او تحرير د خطاب پشان دې **وَكَذَا الْإِرْسَالُ** اوهم دا حکم د قاصد ليګلو دې **حَتَّى اعْتُبِرَ مَجْلِسُ بُلُوغِ الْكِتَابِ وَأَدَاءِ الرِّسَالَةِ**. تردې چې د خط رسيدلو، اود پيغام ادا کاوه مجلس به معتبر وى.

**حل اللغة:-** ① كتاب: ليك ② الارسال: قاصد ليږل ③ البلوغ ④ رسيدل ⑤ اداء الرسالة: پيغام اداكول

**تشريح:- الكتابة والرسالة كالخطاب**﴿ د خط په ذريعه عقد بيع کول، او د پيغام رسولو په ذريعه باندې بيع کول، د خطاب پشان دى. تردې چې د خط رسيدلو، اود پيغام ادا کاوه مجلس به معتبر وى. ① مثلاً يو کس چاته اوليکل چه ما خپل فلانې غلام په تا باندې د زر درهمو په عوض کې خرڅ کړلو. نو په کوم مجلس کې چې ده ته دا خط ملاؤ شو. هم په دې مجلس کې که ده اووئيل چه ما واخستلو. يا ما قبول کړلو. نو بيع تام به وى. ② يا مثلاً بائع خالد ته اووئيل چه خپل فلانې غلام حامد باندې د زر درهمو په عوض خرڅ کړلو. ته دا پيغام حامد ته اورسوه. نو قاصد چې په کوم مجلس کې پيغام اورسولو. او حامد ته ئې واؤرولو. نو که حامد هم په دې مجلس کې ,,اشتريت،، يا ,,قبلت،، اووئيل. نو بيع تام به وى. ګنى تام به نه وى.

**وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَقْبَلَ فِي بَعْضِ** او بائع ته دا اختيار نشته. چه په بعض مبيع کې بيع قبول کړى **وَلَا أَنْ يَقْبَلَ الْمُشْتَرِي بِبَعْضِ الثَّمَنِ** اونه دا (اختيار شته) چې مشترى مبيع د بعض ثمن په عوض قبول کړى.

**حل اللغة:-** ① مبيع: کوم څيزچه خرڅولې شى، ② مشترى: اخستونکې، ③ الثمن: کوم دارهم چې د مبيعې په مقابله کې وى

**تشريح:- عدم الخيار في بعض المبيع وبعض الثمن**﴿ علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه د بائع يا مشترى لپاره په بعض مبيع کې د بيع قبلولو اختيار نشته. ① مشترى ته اختيار نشته. چه دې مبيع د بعض ثمن په عوض کې قبول کړى. بائع اووئيل. چه ما دا غلام په تا باندې د زرو روپو په عوض کې خرڅ کړلو. مشترى اووئيل. چه ما د پنځه سوه روپو په عوض کې قبول کړلو. نو ټيك نه ده. ② يا مثلاً بائع اووئيل. چه ما دا دوې (دوه) شيان د زرو روپو په عوض خرڅ کړل. نو مشترى ته به دا اختيار نه وى. چه دې په دې کې يو شئ د پنځه سوه روپو په عوض کې قبول کړى. دغه ډول که مشترى اووئيل. چه ما دا دوې (دوه) شيان د زر روپو په عوض کې واخستل. نو بائع ته به دا اختيار نه وى. چه دې په دې کې يو شئ د زرو روپو په عوض کې قبول کړى.

**لِعَدَمِ رِضَا الْآخَرِ بِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ**، ځکه چې معامله د متفرق کيدلو په وجه به دوهم نه راضى کيږى. **إِلَّا إِذَا بَيَّنَ كُلَّ وَاحِدٍ** خو چه کله ئې د هريو ثمن بيان کړې وى **لِأَنَّهُ صَفَقَاتٌ مَعْنًى** ځکه چې دا معنى په ډيرو صفقاتو کې ده.

**حل اللغة:-** ① الصفقة: معامله، ② بيان: واضح کيدل، ③ الاعراض: ډډه کول، ④ الرجوع: واپس کيدل

**تشريح:- صورة الجواز**﴿ دغه ډول که په صفقه واحده کې ګڼ شيان خرڅ کړې شو. او دهر يو ثمن جلا جلا بيان کړې شو. نو بيا هم په بعض مبيع کې بيع قبلول جائز دى. مثلا يوکس اووئيل چه ما دا دوې (دوه) غلامان خرڅ کړل. مشترى په دوى کې يو غلام د سلو روپو په عوض کې بيع قبوله کړله. نو جائز دى. ځکه چې دا معنى ګڼې صفقې دى. نو مشترى يوه صفقه قبوله کړله. او پاتـه ئې پريخودله. نو په دې سره تفريق د صفقه نه لازميږى. او هر کله چې تفرق د صفقه لازم شو. نو بيع هم جائز ده.

### د قبول نه وړاندې د احد المتعاقدين د مجلس نه پاسيدل

**قَالَ وَأَيُّهُمَا قَامَ عَنِ الْمَجْلِسِ قَبْلَ الْقَبُولِ** اوپه (بائع او مشترى) دواړوکې چې هريو د قبلولو نه وړاندې پاسيدلو **بَطَلَ الْإِيجَابُ**. نو ايجاب باطل شو **لِأَنَّ الْقِيَامَ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ وَالرُّجُوعِ**. ځکه چې ودريدل د قبلولو نه د اعراض کولو، اود ايجاب نه د رجوع کاوه دليل دې **وَلَهُ ذَلِكَ عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ** او ده ته اختيار حاصل دې. (چه د قبول يا ايجاب نه رجوع اوکړى) لکه چې موږ ذکر کړل..

**تشریح:- صورته** ◉ صورت د مسئلې دادې چه د احدالمتعاقدین د ایجاب او قبول نه روسته د آخر د قبلولو نه وړاندې په دواړوکې که یوکس پاسیدلو نوایجاب باطل شو.او دده دا ودریدل به د ایجاب نه د رجوع کاوه دلیل وی.او که عاقد آخر پاسیدلو.نو دده پاسیدل به د قبلولو نه د اعراض کاوه دلیل وی.اودا وړاندې تیرشوی دی.چه موجب ته دخپل ایجاب نه د رجوع کاوه اختیار شته.او آخر ته د قبلولو یا د اعراض یعنی د بیع د رد کولواختیار حاصل دې. او په دې دواړو صورتونوکې ایجاب باطلیږی.

**الاشارة في لفظ الهداية** ◉ ښکاره دې وی.چه په عامو کتابونوکې ذکر دی.چه مطلق قیام د اعراض دلیل دې.که ددې خائې نه منتقل کیدل اوموندې شی.یا منتقل کیدل اونه موندې شی.① علامه عینی رحمه الله وئیلی دی.چه د فاضل مصنف رحمه الله عبارت په ﴿قام عن المجلس﴾ سره معلومیږی.چه ذهاب او انتقال شرط دې.ځکه چې ﴿قيام عن المجلس﴾ به ددې خائې نه په منتقل کیدلو سره متحقق کیږی.ځکه که صرف اودریږی.او ددې خائې نه اخوانشی.نو دده لپاره ﴿قام فيه﴾ وئیلې شی. ﴿قام عنه﴾ نشی وئیلې کیدلې.نو د مصنف ﴿قام عن المجلس﴾ وئیل، ددې خبرې دلیل دې.چه د خپل خائې نه ودریدل او تلل شرط دی.② دغه ډول شیخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله په شرح جامع صغیر کې لیکلی دی.چه مطلق پاسیدل د عراض دلیل نه دې.بلکه هغه قیام د اعراض دلیل دې.چه په هغې کې تلل، او منتقل کیدل اوموندې شی.که بائع پاسیدلو. او د خپل خائې نه منتقل نشو.او مشتری قبول کړلو.نو صحیح ده.

دا خیال هم ساتل پکار دی.چه په حقیقت کې که مجلس بدل نشو.او کار بدل شو.نو داهم د مجلس بدلولو په حکم کې دی.په دې سره هم ایجاب باطلیږی.

**د خیار مجلس شرعی حیثیت**

> وَإِذَا حَصَلَ الْإِيجَابُ وَالْقَبُولُ او کله چې ایجاب او قبول حاصل شو لَزِمَ الْبَيْعُ نو بیع لازم شوه وَلَا خِيَارَ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا. او په دوی دواړوکې هیڅ یوکس ته د رجوع کاوه اختیار نشته إِلَّا مِنْ عَيْبٍ أَوْ عَدَمِ رُؤْيَةٍ.خود عیب په وجه یا دنه کتلو په وجه (به خیارحاصل وی)

**حل اللغة:-** ① العیب،نقصان،، ② رویة،لیدل، ③ خیار،اختیار، ④ الثبوت،ثابتیدل

**تشریح:- المذهبان في المسئلة** ◉ ① داحنافو په نیز او دغه ډول امام مالك رحمه الله هم د دې قائل دې چې هرکله د عاقدینو د اړخه ایجاب او قبول حاصل شو.نو بیع لازمه شوه.او په بائع اومشتری کې د هر یوکس لپاره ملك ثابت شو.یعنی بائع د ثمن مالك شو.او مشتری د مبیع مالك شو.اوس به په دوی کې د هیڅ یو کس لپاره د بیع فسخ کاوه اختیار نه وی.

**صورتی جواز البیع** ◉ خوکه په مبیع کې څه عیب وی.یا ئې مبیع بغیر د کتلو نه اخستې وی.نو په دې دواړو صورتونوکې به مشتری ته خیار حاصل وی.په ړومبی صورت کې خیار عیب،او په دوهم صورت کې به خیار رؤیت حاصل وی.

> وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ يَثْبُتُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خِيَارُ الْمَجْلِسِ او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په دواړوکې د هریو کس لپاره خیارمجلس ثابت دې.

**تشریح:-** دامام شافعی رحمه الله په نیز اود امام احمد رحمه الله په یو قول کې چې په عاقدینو کې د هریو کس لپاره خیارمجلس ثابت دې.یعنی د ایجاب او قبول نه روسته هر یو کس ته د آنډیوالانو د رضامندئ نه بغیر په مجلس کې دننه د بیع فسخ کاوه حق حاصل دې.خو د مجلس نه روسته به دا اختیار پاته نه وی.



> لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الْمُتَبَايِعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا(۱) ځکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی.چه دواړه بیع کونکی په خیار سره دی مالم یتفرقا ترکومه پورې چې دوی جلا نشی

**حل اللغة:-** ① المتبایعان،تثنیه د بائع، خرڅونکې، ② فسخ،ختمول، ③ ابطال،باطلول، ④ محمول،حمل شوې

**تشریح:-** د شافعی رحمه الله دلیل د ابن عمر رضی الله عنهما دا حدیث دې. ﴿المتبايعان بالخيار مالم يتفرقا﴾ یعنی بائع او مشتری ته ختیار دې.چه تر کومه پورې دوی جلا نشی.وجه د استدلال داده.چه په حدیث کې لفظ د ﴿المتبايعان﴾ راغلې دې.اود،، متبایعان ،،( بائع او مشتری) اطلاق د ایجاب او قبول نه روسته کیږی.وړاندې نه کیږی.او د تفرق نه مراد تفرق بالابدان دې.اوس به ژباړه دا وی.چه بائع او مشتری ته د ایجاب او قبول نه روسته خیار حاصل دې.چه تر کومه پورې دواړه په بدن سره جدا نشی.او هرکله چې په بدن سره جدا شی.نودا خیار پاته نه پاتې کیږی.او دا ښکاره ده.چه د ایجاب او قبول نه روسته د تفرق ابدان نه وړاندې چې کوم خیار وی.هغه خیار مجلس وی.نو ثابته شوه.چه عاقدینو ته په مجلس کې دننه خیار مجلس حاصل وی.

> وَلَنَا او زموږ دلیل دادې. أَنَّ فِي الْفَسْخِ چې په فسخ کولوکې إِبْطَالَ حَقِّ الْآخَرِ د غیر حق باطلول لازمیږی فَلَا يَجُوزُ په دې وجه جائز نه دې.

**تشریح:-** داحنافو دلیل د الله تعالی قول دې ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ﴾ یعنی که د یوبل په رضامندئ سره تجارت اوشو.نو الله تعالی مشتری لپاره په بیع کې د خوړلو اجازت دې.اود ایجاب او قبول نه روسته تجارت صادقیږی.نو معلومه شوه.چه دایجاب او قبول نه روسته مشتری مبیع،او بائع ثمن استعمالولې شی.اودا استعمالول په خیار باندې موقوف نه دی.نو که عاقدینو ته د خیار مجلس حق ورکړې شو.نو دا نص به باطل شی.او بطلان د نص ټیك نه دې.په دې وجه به ددوی لپاره خیار مجلس نه ثابتیږی.

دوهم دلیل د الله تعالی قول ﴿وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ﴾ دې. په دې آیت کې د شهادت سره د بیع د توثیق حکم ورکړې شوې دې.چه احدالعاقدین د بیع انکار اونکړی.او،،بیع،، خیار نه وړاندې دایجاب او قبول نه روسته صادقیږی.نو که خیار ثابت کړې شو.نو دا نص به باطل وی.او بطلان د نص درست نه دې.په دې وجه هم د عاقدینو لپاره خیار مجلس ثابت نه دې.

اوعقلی دلیل دادې.چه په ایجاب او قبول سره بیع تام اوشوه.او د مشتری ملك په مبیع کې او د بائع حق په ثمن کې ثابت شو.اوس که دوی ته خیار مجلس ورکړې شی. نود خپل خیار په وجه چې کوم کس هم بیع فسخ کړی.نو دده د انډیوالان د رضامندئ نه بغیر دده حق باطلول لازمیږی.مثلاً بائع که د خپل خیار په وجه بیع فسخ کړی.نو د مبیع څخه به د مشتری ملك بغیر دده د رضامندئ نه زائل شی.او که مشتری فسخ کړی.نود بائع حق ثمن به باطل شی.په هر صورت کې چې څوك ئې هم فسخ کړی.نو دده د انډیوالان د رضامندئ نه بغیر دده حق باطلول لازمیږی. اود رضامندئ نه بغیر د غیر حق باطلول ناجائز دی.په دې وجه د عاقدینو لپاره خیارمجلس ثابت نه دې.

> وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى خِيَارِ الْقَبُولِ او حدیث په خیارقبول باندې محمول دې وَفِيهِ إِشَارَةٌ إِلَيْهِ اوپه حدیث کې هم دې معنی اړخ ته اشاره ده فَإِنَّهُمَا مُتَبَايِعَانِ حَالَةَ الْمُبَاشَرَةِ ځکه چې دواړه به خپل منځ کې بیع کونکی هغه وخت وی.چه کله دواړه ایجاب او قبول کوی لَا بَعْدَهَا ددې نه روسته به نه وی

**حل اللغة:-** ① خیارالقبول،دقبلولو اختیار، ② حالة المباشرة،دایجاب اوقبول کولو وخت، ③ الاحتمال، احتمال لرل

(۱) من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه البخاری فی البیوع باب ٤٢ رقم ۲۱۰۷ ومسلم فی البیوع باب ۲٦ رقم ۱۲٤٥ والنسائی فی البیوع باب ۹ رقم ٤۱٦۱ وابن ماجه فی التجارات باب ۱۷ رقم ۲۱۸۱ ومالک فی البیوع رقم ۷۹)_

**تشریح:-** دامام شافعي رحمه الله د پیش شوي حدیث ﴿المتبایعان بالخیار مالم یتفرقا﴾ ځواب دادي چه په حدیث کي د خیار نه خیارقبول مراد دي یعنی د احدالعاقدین د بیع د ایجاب کاوه نه روسته دوهم ته اختیار دي. که دا رد کړي او که رد نه کړي. او په حدیث کي هم دي اړخ ته اشاره ده. په دي طریقه چي لفظ د حدیث ﴿المتبایعان﴾ د اسم فاعل ،،متبائع،، تثنیه ده. او ددي دري حالتونه دی. (۱) د ایجاب او قبول نه وړاندي (۲) دایجاب او قبول نه روسته په دي دواړو صورتونو کي دوی ته مجازاً متبایعان وئیلی شی ځکه چي په اول صورت کي په اعتبار د مستقبل سره او په دوهم صورت کي په اعتبار د ماضی سره دوی ته متبایعان وئیلی شی (۳) او دریم صورت دایجاب نه روسته اود قبول نه وړاندي نوپه دي صورت کي دوی ته متبایعان په حقیقت کي وئیلی شی ځکه چي د عقد مهال (دوران) دي نو په حدیث کي به هم دا دریم صورت مراد وی کوم چي حقیقت دي

| |
|---|
| **أَوْ يَحْتَمِلُهُ** یا په حدیث کي د خیارقبول احتمال دي **فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ** نو حدیث به هم په دي باندي محمول کولي شی. |

**تشریح:-** اود ﴿یحمله﴾ نه دوهم ځواب دي. دځواب حاصل دادي چه په حدیث کي که د خیار نه ختماً خیارقبول مراد نه دي. خو احتمال د خیارقبول هم شته دي یعنی په بالخیار کي د خیار نه خیار قبول هم مراد کیدلي شی. او خیارمجلس مراد کیدلي شی. خو چونکه خیارمجلس مراد اخستل، د غیر دحق د ابطال سبب دي. په دي وجه به په خیارقبول باندي محمول کولي شی. په خیارمجلس به نشی محمول کولي.

| |
|---|
| **وَالتَّفَرُّقُ فِيهِ تَفَرُّقُ الْأَقْوَالِ** او په حدیث کي د تفرق نه تفرق د اقوالو مراد دي. |

**تشریح:-** او د تفرق نه مراد تفرق اقوال دي. یعنی خیارقبول ثابت دي چه ترکومه پوري عاقدین قولاً متفرق نشی. او که دواړه قولاً متفرق شی. په دي طریقه چي په ذوی کي یو ،، بعت ،، اوبل ،، اشتریت،، اووائی. نو ددي نه روسته به خیار پاته نه وی.

**په اعواض مشارالیه او په اثمان مطلقه سره د بیع حکم**

| |
|---|
| **قَالَ وَالْأَعْوَاضُ الْمُشَارُ إِلَيْهَا** قدوری رحمه الله فرمائی. او هغه عوض چي دي اړخ ته اشاره اوکړي شوه **لَا يُحْتَاجُ إِلَى مَعْرِفَةِ مِقْدَارِهَا فِي جَوَازِ الْبَيْعِ** د بیع جائز کیدلو لپاره ددي د مقدار پیژندلو اړتیا نشته. |

**حل اللغة:-** ① **الاعواض**،جمع د عوض، بدله ② **الاحتیاج**،ضرورت، ③ **معرفة**،پیژنګلو ④ **جواز**،جائز کیدل

**تشریح:- عدم الاحتیاج الی معرفة القدر في المشار الیه**⊛ د بیع عوض که ثمن وی. او که مبیع وی. چه کله دي اړخ ته اشاره اوکړي شی. نو د بیع د جواز لپاره ددي دمقدار معلومولو اړتیا نشته. مثلاً داني اووئیل. چه ما دغنمو دا ډیري ددي درهمو په عوض کي واخستلو. کومي چي زما په لاس کي دی. نودا بیع جائز ده. حالانکه نه د بیع، یعنی د غنمو مقدار معلوم دي. او نه د درهمو مقدار معلوم دي.

| |
|---|
| **لِأَنَّ بِالْإِشَارَةِ كِفَايَةً فِي التَّعْرِيفِ** ځکه چي د شناخت لپاره اشاره کافی ده **وَجَهَالَةُ الْوَصْفِ فِيهِ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ** او په دي کي د وصف مجهول کیدل د جګړي سبب نه جوړیږی. |

**حل اللغة:-** ① **الاکتفاء**، کافی کیدل، ② **التعریف**،شناخت، ③ **افضاء**،جوړیدل، رسیدل، ④ **المنازعة**،جګړه

**تشریح:- دلیله**⊛دلیل دادي چه د شناخت لپاره اشاره کافی ده. اود وصف مجهول کیدل، یعنی د مشارالیه مقدار نه معلومیدل، داسي امر نه دي. چه جګړه پیدا کړي. حالانکه د جواز مانع داسي جهالت دي چه د عاقدینو په مینځ کي جګړه پیدا کړي. نو هرکله چي داسي جهالت اونه موندي شو. نو بیع به هم درست او جائز وی.

| |
|---|
| **وَالْأَثْمَانُ الْمُطْلَقَةُ لَا تَصِحُّ** اوکوم ثمن چي مطلق دی. (په دي سره به) عقد صحیح نه وی **إِلَّا أَنْ تَكُونَ مَعْرُوفَةَ الْقَدْرِ وَالصِّفَةِ** مګرداچه مقدار او صفت معلوم وی. |

**حل اللغة:-** ① **الاثمان**،جمع د ثمن، ② **المطلقة**،غیرمقید، ③ **معروفة**، معلوم، القدر، مقدار



**تشریح:- عدم جواز البیع في الاموال الربویة**⊛ واضحه دي وی. چه عوض که د اموال ربویه څنې وی. مثلاً درهم، دنانیر، غنم، اوربشي، چه دا دځپل جنس په عوض خرڅ کړي شی. او ددي مقدار معلوم نه وی. نودا جائز نه دی. اګرچه دي اړخ ته اشاره شوي وی. مثلاً درهم د درهمو په عوض کي خرڅول. یا غنم د غنمو په عوض کي خرڅول. اود دواړو مقدار معلوم نه وی. نودا بیع ناجائز ده. اګرچه دواړو عوضونو اړخ ته اشاره شوي وی. ځکه چي په دي صورت کي د ربوا احتمال موجود دي. او تاسو ته معلومه ده. چه څنګه ربوا حرام ده. دغه ډول احتمال د ربوا هم حرام ده.

**فائدة قید البیع**⊛ په متن کي د بیع په قید لګولو سره د ،، سلم،، احتراز شوي دي. ځکه چي د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په بیع سلم کي د راس المال (ثمن) مقدار معلومول شرط دی. اګرچه دي اړخ ته اشاره شوي وی.

**وجوب معرفة القدر والصفة في الاثمان**⊛ ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی. که ثمن اړخ ته اشاره اونکړي شوه. نو په دي سره به عقد هغه وخت صحیح وی. چه ددي مقدار او وصف دواړه معلوم وی. او که مقدار او وصف دواړه معلوم نه وی. مثلاً دا ئي اووئیل. چه ما دا شئ د سروزرو په عوض کي واخستلو. او نه ئي ددي مقدار بیان کړلو. او نه ئي ددي صفت بیان کړلو. نو دا بیع به جائز نه وی. اود مقدار د بیان صورت دادي. چه اووائی. ما دا شئ د لسو درهمو په عوض واخستلو. اود صفت د بیان صورت دادي. چه داسي اووائی. چه دا دینار بخاری دي. یا سمرقندی دي. یا اعلی دي. یا ردی دي.

| |
|---|
| **لِأَنَّ التَّسْلِيمَ وَالتَّسَلُّمَ وَاجِبٌ بِالْعَقْدِ** ځکه چي سپارل او قبضه کول په حکم د عقد سره واجب دی **وَهَذِهِ الْجَهَالَةُ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ فَيَمْتَنِعُ التَّسْلِيمُ وَالتَّسَلُّمُ** اوچونکه دا جهالت د جګړي سبب جوړیږی. ځکه به اخستل او ورکول ممتنع وی. |

**حل اللغة:-** ① **التسلیم**،سپارل، ② **المفضیة**،اوړونکي، ③ **الامتناع**،منع کیدل، ④ **الجهالة**،عدم علم

**تشریح:- دلیله**⊛نوکه د ثمن مقدار او وصف معلوم نه وی. او ثمن مشارالیه هم نه وی. نو بیع ځکه ناجائز ده. چه د عقدبیع په وجه تسلیم او تسلم، یعنی ورکول او اخستل واجبیږی. اودا جهالت یعنی د مقدار او وصف جهالت د انجام په اعتبار سره جګړه پیدا کوی. مثلاً د مقدار مجهول کیدلو په صورت کي به بائع د زیات ثمن مطالبه کوی. او مشتری به ردی ورکوی. نود داسي جهالت په وجه تسلیم او تسلم ناممکن دي. حالانکه تسلیم او تسلم د عقد بیع په وجه واجبیږی. نو هرکله چي تسلیم او تسلم ناممکن شو. نو بیع به هم درست نه وی.

| |
|---|
| **وَكُلُّ جَهَالَةٍ هَذِهِ صِفَتُهَا** اوهر یو داسي جهالت چي د هغي دا صفت وی **تَمْنَعُ الْجَوَازَ** هغه د بیع د جواز نه مانع دي **هَذَا هُوَ الْأَصْلُ** هم دا اصل دي |

**تشریح:- القاعدة**⊛ دا یوه قاعدي ده لکه څنګه چي علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی. چه کوم جهالت جګړه پیدا کوی. هغه د بیع جائز کاوه نه مانع دي. او کوم جهالت چي ،، مفضی الی المنازعه،، نه وی. هغه د بیع د جواز لپاره مانع نه دي. مثلاً یو کس په دوي (دوه) غلامانوکي یو غلام خرڅ کړلو. او مشتری ته ئي د تعین اختیار ورکړلو. نو د مبیع مجهول کیدلو باوجود بیع درست ده. ځکه چي په دي صورت کي جهالت اګرچه موجود دي. خو مشتری ته د تعین اختیار ور کاوه په وجه ،، مفضی الی المنازعه،، نه دي.

**په پور ثمن سره د بیع حکم**

| |
|---|
| **قَالَ وَيَجُوزُ الْبَيْعُ بِثَمَنٍ حَالٍّ وَمُؤَجَّلٍ** قدوری رحمه الله فرمائی. او بیع د نغد ثمن په عوض اود پور ثمن په عوض جائز ده **إِذَا كَانَ الْأَجَلُ مَعْلُومًا** بشرطیکه میعاد معلوم باشد په دي شرط چي میعاد معلوم وی |

**حل اللغة:-** ① **الرهن**،ګانړه، ② **الدرع**،زغره، ③ **الموجل**،نیسیه، ④ **طعام**،خوراك

**تشریح:- جوازالبیع نقداً ونسیاً**⊛ بیع په نغدو او قرضو دواړه شان جائز ده. په دي شرط چي د قرضو موده معلومه وی. که د قرضو موده معلومه نه وی. نو بیع به فاسد وی.

| |
|---|
| **لِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ﴾** ځکه چي د الله تعالی قول ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ﴾ مطلق دي. |

تشريح:- دليل دادي چه الله تعالى ﴿وَأَحَلَّ اللهُ الْبَيْعَ﴾ مطلق فرمائيلى دى. يعنى بيع مطلقا حلال ده. ثمن كه نغد وى. او كه پور وى. په دې آيت كې دواړه داخل دى.

وَعَنْهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبى كريم ﷺ نه روايت دې أَنَّهُ اشْتَرَى مِنْ يَهُودِيٍّ طَعَامًا إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ چې دوى ﷺ د يو يهودى نه څه غله د يوې مودې په وعده باندې پور واخستله وَرَهَنَهُ دِرْعَهُ. (١) او خپله زره ئې دهغه سره امانت كيخودله.

تشريح:- د رسول الله ﷺ حديث دې. حديث دادې. چه رسول اكرم ﷺ د ابوشحم نومې يهودى نه څه غله د يوې مودې په وعده باندې پور واخستله. او خپله زره ئې دده سره رهن كيخودله. اود بخارى په حديث كې د ﴿ثلاثين صاعاً من شعير﴾ لفظ دې. يعنى نبى كريم ﷺ ديرش صاع اوربشې واخستلې.

وَلَابُدَّ أَنْ يَكُونَ الْأَجَلُ مَعْلُومًا اود ميعاد معلوم كيدل ضرورى دى.

تشريح:- د ذكر شوى آيت او روايت نه معلوميږى. چه بيع څنګه په نغدو جائز ده. دغه ډول په قرضو هم جائز ده. خود قرضو موده او وخت معلومول ضرورى دى.

لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهِ مَانِعَةٌ مِنَ التَّسْلِيمِ الْوَاجِبِ بِالْعَقْدِ دليل دا دې چې د ميعاد مجهول كيدل به د هغه ثمن ادا كاوه نه مانع وى. كوم چې دعقد بيع په وجه واجب شوى دى.

تشريح:- دليل دا دې چې د مودې مجهول كيدل، د ثمن سپارلو نه مانع دى. حالانكه د ثمن سپارل د عقد بيع په وجه واجب شوي دي.

فَهَذَا يُطَالِبُهُ بِهِ فِي قَرِيبِ الْمُدَّةِ نو بائع به په نژدې موده كې ددې مطالبه كوى. وَهَذَا يُسَلِّمُهُ فِي بَعِيدِهَا او مشترى به په لرې موده كې سپارل غواړى.

تشريح:- اود سپارلو نه په دې وجه مانع دې. چه بائع به په نژدې موده كې د ثمن مطالبه كوى. او مشترى به په لرې موده كې د ور كاوه كوښښ كوى. نو په دې وجه به جګړه پيدا شى. او كوم جهالت چې جګړه پيدا كړى. چه دا د بيع د جواز لپاره مانع دې. په دې وجه د مودې مجهول كيدل به د بيع د جواز لپاره مانع وى.

**د مطلق ثمن څخه به كوم نقديت مراد وى؟**

قَالَ وَمَنْ أَطْلَقَ الثَّمَنَ فِي الْبَيْعِ قدورى رحمه الله فرمائى. اوكوم كس چې په بيع كې ثمن مطلق اوساتل كَانَ عَلَى غَالِبِ نَقْدِ الْبَلَدِ نوكوم ثمن چې دغه ښار كې د ټولو نه زيات رائج وى. هم په دې به محمول كولې شى.

تشريح:- صورة المسئلة په يوښار كې كه مختلف قسمه سكې رائج وى. او په ماليت كې واړه برابر وى. مثلاً په يو ښار كې بخارى او سمرقندى دواړه سكې رائج وى. او ماليت د دواړو برابر دې. نو په داسې صورت كې كه ثمن مطلق ذكر كړې شو. يعنى صرف مقدار ذكر كړې شو. خو صفت ئې ذكر نكړو. مثلاً دائې اووئيل چه ما داڅيز په لس درهمو واخستلو. خودا ئې اونه وئيل. چه دا درهم به بخارى وى. او كه سمرقندى به وى. نودا به د ښار په غالب نقديت باندې محمول كولې شى.

لِأَنَّهُ الْمُتَعَارَفُ څكه چې هم دا متعارف (مشهور) دى وَفِيهِ التَّحَرِّي لِلْجَوَازِ او په داسې كول كې د بيع د جواز طلب كول هم دى فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ څكه به مطلق لفظ هم دې اړخ ته ګرځولې شى.

تشريح:- دليل دا دې چې د كومې سكې رواج او چلن زيات وى. متعارف هم هغه وى. او قاعده ده. چه ﴿المعروف كالمشروط﴾ يعنى معروف او متعارف ته هم هغه درجه حاصل وى. كومه چې مشروط ته حاصله وى. نو د يوې

---

(١) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخارى فى الإستقراض باب ١ ومسلم فى المساقات رقم ١٢٤ وأبوداود فى الجهاد باب ١٣٦ والنسائى فى البيوع باب ٥٩ ومالك فى الجهاد رقم ١٨ وأحمد فى المسند (٦/٤٢)_



سكې د شرط كاوه په وجه چې څنګه په مشترى باندې مشروط ثمن واجبيږى. دغه ډول د عدم شرط په صورت كې هم متعارف سكه واجبيږى. او متعارف به هم هغه وى. د كوم چلن چې زيات وى. په دې وجه موږ اووئيل چه په ښار كې دكومې سكې چلن زيات وى. د مطلق ثمن وئيلو په صورت كې به هم دا واجب وى. د ښار په غالب نقديت باندې دمحمول كاوه په صورت كې د بيع جواز طلب كول دى. په دې وجه به هم دا د ښار غالب نقديت اړخ ته ګرځولې شى.

**د مختلف نقديت رائج كيدلو په وخت د تعين نه بغير د بيع د نفاذ حكم**

فَإِنْ كَانَتِ النُّقُودُ مُخْتَلِفَةً بيا كه ددې نقود ماليت مختلف وى فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ أَحَدَهُمَا مګردا چې په دې كې يو بيان كړى وَهَذَا إِذَا كَانَ الْكُلُّ فِي الرَّوَاجِ سَوَاءً اودا حكم هغه وخت دې. چه په رواج كې واړه نقود برابر وى.

تشريح:- ددې مسئلې عقلاً څلور صورتونه دى. څكه چه① يا به په ماليت او رواج دواړو كې اختلاف نه وى. ② يا به په دواړو كې اختلاف وى. ③ يا به په ماليت كې اختلاف نه وى. او په رواج كې به اختلاف وى. ④ يا به په رواج كې اختلاف نه وى. بلكه په ماليت كې به اختلاف وى. د دريم صورت بيان په تيره شوې مسئله كې ذكرشوې دې. دڅلورم صورت بيان په دې عبارت كې دې. فرمائى. چه په ښار كې د ننه كه د ټولو مروجه نقودو ماليت مختلف وى. او په رواج كې واړه برابر وى. نو بيع به فاسد وى. خو كه په دې كې يوه سكه بيان كړى. (نو بيع به جائز وى)

لِأَنَّ الْجَهَالَةَ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ څكه چې مجهول كيدل د جګړې سبب دې إِلَّا أَنْ تَرْتَفِعَ الْجَهَالَةُ بِالْبَيَانِ. مګردا چې جهالت لرې شي. (كه) په بيانولو سره وى أَوْ يَكُونَ أَحَدُهُمَا أَغْلَبَ وَأَرْوَجَ. (اوكه داسې وى) چې په دې كې د يو رواج او چلن زيات وى فَحِينَئِذٍ يُصْرَفُ إِلَيْهِ تَحَرِّيًا لِلْجَوَازِ. نو په داسې صورت كې به هم ددې اړخ ته ګرځولې شى. چه عقدجائز شى.

تشريح:- دليله د ،، اختلاف فى الماليت ،، په صورت كې د سكې مجهول كيدل جګړه پيدا كوى. په دې طريقه چې بائع به د هغه سكې مطالبه كوى. د كومې ماليت چې زيات دې. او مشترى به د هغه سكې ور كاوه كوښښ كوى. د كومې ماليت چې كم دې. او داسې جهالت د بيع مفيد وى. په دې وجه به په دې صورت كې بيع فاسد وى. خو كه د يوې سكې په بيانولو سره ددې جهالت لرې كړې شو. نو بيع به درست وى.

﴿أويكون أحدهما أغلب وأروج.... الخ﴾ كې د دوهم صورت بيان دې. يعنى كه نقود په ماليت او رواج دواړو كې مختلف وى. په دې طريقه چې په ماليت كې هم تفاوت (كمې زياتې) وى. او په چلن كې هم تفاوت وى. يعنى د يوې سكې چلن كم وى. او دبلې زيات وى. نو په دې صورت كې به بيع درست وى. او په مشترى به هغه سكه واجبه وى. د كومې چلن چې زيات وى. څكه چې په داسې كولوكې، يعنى په اغلب او په اروج باندې په محمول كولوكې د بيع جواز طلب كول دى. اود عاقل بالغ فعل او قول حتى الامكان په جواز باندې محمول كول پكار دى.

وَهَذَا إِذَا كَانَتْ مُخْتَلِفَةً فِي الْمَالِيَّةِ اودا واړه هغه وخت دى. چه كله واړه نقود په ماليت كې مختلف وى فَإِنْ كَانَتْ سَوَاءً فِيهَا او كه دا نقود په ماليت كې برابر وى كَالثُّنَائِي وَالثُّلَاثِي وَالنُّصْرَتِي الْيَوْمَ بِسَمَرْقَنْدَ ولكه چې نن سهار په سمرقند كې ثنائى، ثلاثى او نصرتى دى وَالِاخْتِلَافُ بَيْنَ الْعَدَالَى بِفَرْغَانَةَ او په فرغانه كې عدالى مختلف دى جَازَ الْبَيْعُ نو بيع به جائز وى. إِذَا أُطْلِقَ اسْمُ الدِّرْهَمِ چې كله مطلق درهم لفظ اووائى. كَذَا قَالُوا. هم دغه ډول متاخرين مشائخو هم وئيلى دى.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه د بيع فساد هغه وخت دې. چه كله نقود په ماليت كې مختلف وى. او په رواج كې برابر وى. ﴿فإن كانت سواء فيها... الخ﴾ كې د اول صورت بيان دې. يعنى كه نقود په ماليت او رواج دواړو كې برابر وى. نو په مطلق درهم لفظ وئيلوسره به بيع درست وى. او مشترى چې دكوم ډول نه غواړى. د درهم هغه مقدار دې اداكړى. كوم ئې چې بيان كړې دې. يعنى لس يا شل كوم مقدار چې بيان شوې وو. هغه دې اداكړى. او

دکوم ډول نه چي غواړي. هغه دې اداکړي. ځکه چې په دې صورت کي خو نه په ماليت کي اختلاف دی او نه څه جګړه پيدا کيږي.

د نقود په ماليت کي د برابر کيدلو مثال دادی. چه لکه څنګه نن سهار په سمرقند کي نصرتي، ثنائي، او ثلاثي درې قسمه سکې رائج دي. او د درې وارو ماليت برابر دی. په دې طريقه چې نصرتي خو د پوره يو درهم وی. او دا درهم والا د سمرقند نصرة الدين اړخ ته منسوب دی. او ثنائي نه مراد هغه دی. چه ددې دوې (دوه) ملاؤ شي. نو يو درهم جوړيږي. او دثلاثي نه مراد هغه دی. چه ددې درې ملاؤ شي. نو يو درهم جوړيږي. نو که په سمرقند کي يو شي د لسو درهمو واخستلې شي. نود مشتري خوښه ده. چه نصرتي لس درهمه ورکړي، يا ثنائي چې دوې (دوه) ملاؤ کړي. اويو درهم جوړيږي. شل ورکړي. يا ثلاثي کوم چې درې ملاؤ کړې شي. او يو درهم جوړيږي. ديرش ورکړي. لکه څنګه چي نن سهار په هندوستان کي که د لسو درهمو يو شي واخلي. نود مشتري که خوښه وی. لس روپۍ دې ورکړي. يا شل اتانيزونه ورکړي. يا څلوېښت څلورانيزونه ورکړي. واړه درست دي. په دې شرط چې په تکړې کولو (چينج کولو) کي څه نقصان نه وی. هم دغه ډول اختلاف په فرغانه کي په عدالی سکه کي دی.

**په خلاف جنس سره د غلې د بيع حکم**

وَيَنْصَرِفُ إِلَى مَا قَدَّرَبِهِ مِنْ أَيِّ نَوْعٍ كَانَ. اود کوم ډول نه چي غواړي. هم هغه مقدار طرف ته به ګرځولې شي. کوم ني چي بيان کړې دي لِأَنَّهُ لَا مُنَازَعَةَ ځکه چي هيڅ جګړه نشته وَلَا اخْتِلَافَ فِي الْمَالِيَّةِ. اونه په ماليت کي اختلاف دی قَالَ وَيَجُوزُ بَيْعُ الطَّعَامِ وَالْحُبُوبِ مُكَايَلَةً وَمُجَازَفَةً قدوري رحمه الله فرمائي. او جائز ده بيع د غنمو اود غلې په پيمانه سره په ناپ کاوه او اندازه سره خرڅول وَهٰذَا إِذَا بَاعَهُ بِخِلَافِ جِنْسِهِ. اودا هغه وخت (جائز دی) چې کله ني خرڅ کړي. د خپل جنس د خلاف په عوض سره.

حل اللغة:- ① نوع، قسم، ② الحبوب، جمع د حبة دانه، ③ المكيلة، پيمانه كول، ④ مجازفة، په اندازه وركول

تشريح:- په متن کي د طعام نه مراد غنم او ددې اوړه دي. او د حبوب نه مراد نورې غلې دی. مسئله داده. چه غنم او نوره غله په پيمانه سره ناپ کول او خرڅول جائز دي. او په اټکل او اندازې سره خرڅول هم جائز دی. خو په اندازې سره خرڅول په هغه وخت جائز وی. چه کله ني دا د خلاف جنس په عوض خرڅ کړی وی. مثلاً غنم ني د اوربشو په عوض خرڅ کړې وی. او که ددې د جنس په عوض ني اندازې سره خرڅ کړي. نودا جائز نه دی. ځکه چې په دې کي د ربوا احتمال دی. او احتمال د ربوا هم هغه شان ممنوع دی. لکه څنګه چي ربوا ممنوع ده.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه د رسول الله ﷺ ارشاد دی إِذَا اخْتَلَفَ النَّوْعَانِ چې کله دواړه قسمونه مختلف وی فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ. (1) نو څنګه چي غواړئ خرڅوئ يې. بَعْدَ أَنْ يَكُونَ يَدًا بِيَدٍ روسته ددې نه چي لاس پلاس وی. بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ بِجِنْسِهِ مُجَازَفَةً په خلاف ددې. چه کله ني دا ددې د جنس په عوض په اندازه سره خرڅ کړې وی. لِمَا فِيهِ مِنْ احْتِمَالِ الرِّبَا ځکه چي په دې کي د ربوا احتمال دي

تشريح:- دليله‌ اود خلاف جنس په عوض کي په اندازه سره د خرڅولو د جواز دليل ① حديث دی. پوره حديث داسې دی. «الذهب بالذهب، والفضة بالفضة، و البر بالبر، والشعير بالشعير، والتمر بالتمر، والملح بالملح مثلا بمثل سواء بسواء يدا بيد فإذا اختلف

(١) غريبه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل حديث عبادة بن صامت رضي الله عنه أن رسول الله ﷺ قال التمر بالتمر والملح بالملح مثلا بمثل سواء بسواء يدا بيد وإذا إختلفت هذه الأصناف فبيعوا كيف شئتم إذا كان يدا بيد)) أخرجه مسلم في المساقاة: رقم ٨٠ وأبوداود في البيوع باب ١٢ رقم ٣٣٤٩ والترمذي في البيوع باب ٢٣ والنسائي في البيوع رقم ٤٢٥٥ وابن ماجه في التجارات باب ٤٨ رقم ٢٢٥٤ كذا في نصب الرأية (٧/٤)_



هذه الأصناف فبيعوا كيف شئتم إذا كانت يدا بيد» يعني سره زر د سرو زرو په بدله کي، سپين زر د سپينو زرو په بدله کي، غنم د غنمو په بدله کي، اوربشي د اوربشو په بدله کي، کجورې د کجورو په بدله کي، مالګه د مالګې په بدله کي، برابر سرابر، لاس په لاس خرڅوئ او هرکله چې دا انواع مختلف شي. نو چي څنګه غواړئ خرڅوئ يې. چه کله په مجلس کي يو تربله قبضه اوشي. دې حديث نه ثابته شوه. چه په اموال ربويه کي دجنس د اختلاف په صورت کي په هره طريقه خرڅول جائز دی. په ناپ کاوه سره هم، او په اندازې سره هم، برابر سرابر هم، او په کمی زياتي سره هم.

وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ غَيْرُ مَانِعَةٍ مِنَ التَّسْلِيمِ وَالتَّسَلُّمِ. اوځکه چې د مقدار مجهول کيدل د تسليم او تسلم نه مانع نه دي فَشَابَهَ جَهَالَةَ الْقِيمَةِ نودا قيمت د مجهول کيدلو مشابه شو.

تشريح:- دوهم دليل دادی. چه په اندازې سره د خرڅولو په صورت کي د عوضينو د مقدار مجهول کيدل، د تسليم او تسلم لپاره مانع نه دی. او مفسد د بيع هم دا جهالت وی. کوم چې د تسليم او تسلم لپاره مانع وی. نو هرکله چې دا جهالت د تسليم او تسلم لپاره مانع نه دی. نو بيع به هم فاسد نه وی. اودا د قيمت مجهول کيدلو مشابه شو. مثلاً يو کس د درهم په عوض څه سامان واخستلو. اودا معلومه نه ده. چه ددې قيمت د يو درهم نه زيات دی. او که کم دی. او که برابر دی. نو لکه څنګه چې د قيمت مجهول کيدل ،، مفضى الى المنازعه،، نه کيدلو په وجه د جواز مانع نه دی. دغه ډول دلته کي هم د عوضينو مقدار مجهول کيدل ،،مفضى الى المنازعه،، نه کيدلو په وجه دجواز مانع نه دی.

فوائد: د قيمت اوثمن په مينځ کي توپير دادی. چه ثمن هغه ته وائي. کوم چې د عاقدينو په مينځ کي مقرر شوې وی. او قيمت هغه دی. کوم چې قيمت مقرر لګونکي مقرر کوی. عاقدين ني نه مقرر کوی.

**په معينو لوښو. او په معينو کاڼرو سره د بيع حکم**

قَالَ وَيَجُوزُ بِإِنَاءٍ بِعَيْنِهِ لَا يُعْرَفُ مِقْدَارُهُ قدوري رحمه الله فرمائي. او په يو معين لوښي سره چې ددې مقدار معلوم نه وی وَبِوَزْنِ حَجَرٍ بِعَيْنِهِ لَا يُعْرَفُ مِقْدَارُهُ. اود يو معين کاڼري په وزن سره چې ددې مقدار معلوم نه وی. (بيع کول) جائز دی.

حل اللغة:- ① الاناء، لوښي، ② عين، معين، ③ حجر، کاڼړي، ④ الندرة، ناشنا

تشريح:- صورت د مسئلې دادی. چه يو معين لوښي، چې ددې مقدار معلوم نه دی. او يو معيني کاڼړي چې ددې مقدار معلوم نه دی. په دې سره بيع کول جائز دي. مثلا يو کس اووئيل. چه په يوه روپۍ به دا بالټي ډک درکوم. يا ني يو کاڼړي اوچت کړو. او وې وئيل. چه په يوه روپۍ به ددې د وزن په برابر غنم درکوم. نو دا بيع جائز ده. حالانکه نه دا معلومه ده. چه په دې بالټي کي په څومره اندازه غنم دی. او نه ددې کاڼړي وزن معلوم دی.

لِأَنَّ الْجَهَالَةَ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ دليل دا دی چې د مقدرا مجهول کيدل جګړې ته نه رسيږي. لِمَا أَنَّهُ يَتَعَجَّلُ فِيهِ التَّسْلِيمُ ځکه چې په دې سره په بيع کي سپارل في الحال دی. نو ددې معين لوخي يا معين کاڼري فَيَنْدُرُ هَلَاكُهُ قَبْلَهُ، د مبيع سپارلو نه وړاندې هلاکيدل نا آشنا امر دی.

تشريح:- دليل دادی. چه په دې دواړو صورتونوکي د مبيع مقدار اګرچه مجهول دی. خو مفضى الى المنازعه نه دی. ځکه چې په بيع کي مبيع فوراً حواله کولې شي. په دې وجه د مبيع سپارلو نه وړاندې د دې کاڼري يا لوخي هلاکيدل ناآشنا دی. او هرکله چې ددې هلاکيدل نا آشنا دی. نو بائع به په دې متعين لوخي باندې ناپ کوی، يا به په دې متعين کاڼري باندې وزن کوی، او مشتري ته به ني حواله کړي. او په دې کي به هيڅ جګړه نه پيدا کيږي. او هرکله چې د جګړې پيدا کيدلو امکان نشته. نو بيع به هم درست وی. ځکه چې بيع هم په هغه جهالت سره فاسديږي. کوم جهالت چې د جګړې سبب واقع کيږي.

بِخِلَافِ السَّلَمِ په خلاف د بيع سلم لِأَنَّ التَّسْلِيمَ فِيهِ مُتَأَخِّرٌ ،خکه چې په بيع سلم کې مبيع سپارل، د يوې مودې پورې موخر کيږي وَالْهَلَاكَ لَيْسَ بِنَادِرٍ قَبْلَهُ.حالانکه ددې نه وړاندې د أهل برتن يا د کانړي هلاکيدل څه نا آشنا امر نه دې فَيَتَحَقَّقُ الْمُنَازَعَةُ.خکه به جګړه پيدا کيږي.

تشريح:- ،چې دا په معين لوخي يا په معين کانړي سره جائز نه ده.خکه چې د بيع سلم په صورت کې مبيع يعنی مسلم فيه سپارل، د يوې مودې په تاخير سره عمل کې راځي.او په دې موده کې ددې معين لوخي او ددې معين کانړي هلاکيدل نا آشنا نه دی.بلکه هلاکيدل غالب دی.نو اوس به په عاقدينو کې جګړه پيدا کيږي.په دې طريقه چې مسلم اليه يعنی مشتري به وائي.چه هغه لوخې غټ وو.او رب المسلم يعنی بائع به وائي.چه وړوکې وو.او کوم جهالت چې مفضی الی المنازعه وی.هغه مفسد وی.په دې وجه متعين لوخي يا متعين کانړي سره بيع کول فاسد دی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي الْبَيْعِ أَيْضًا.چه په بيع کې هم ناجائز دې وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ وَأَظْهَرُ خو ړومبي قول اصح او اظهر دې.

تشريح:- دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادې چه د متعين لوخي او د متعين کانړي چې ددې مقدار معلوم نه وی.دې سره بيع کول هم ناجائز دی.لکه څنګه چې په بيع سلم کې ناجائز دی.خکه چې په مکيلات او موزونات کې بيع يا خو په اندازه سره کيږي.او يا د مقدار په ذکرکولوسره کيږي.په ړومبی صورت کې د معقوداليه ، مشاراليه کيدل ضروري دی.او په دوهم صورت کې د مقدار بيانول ضروري دی.او دلته کې دواړه شيان نشته.په دې وجه به بيع جائز نه وی.خو قول اول يعنی د جواز قول اصح هم دې.او ښکاره هم دې.

### د غنمو د ډيرې د هرقفيز د يو درهم په مقابله کښې د بيع حکم

قَالَ وَمَنْ بَاعَ صُبْرَةَ طَعَامٍ كُلَّ قَفِيزٍ بِدِرْهَمٍ قدوري رحمه الله فرمائي.اوکه يوکس د غلې يو ډيرې د يو قفيز په عوض د يو درهم په حساب سره خرڅ کړو. جَازَ الْبَيْعُ فِي قَفِيزٍ وَاحِدٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز صرف په يو قفيز کې بيع جائز ده. إِلَّا أَنْ يُسَمِّيَ جُمْلَةَ قُفْزَانِهَا مګرداچه ددې ډيرې واړه قفيزونه بيان کړي.(نو بيا د ډيرې بيع هم جائز ده). وَقَالَا يَجُوزُ فِي الْوَجْهَيْنِ(١) او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه په دواړه صورتونو کې جائز ده لَهُ أَنَّهُ تَعَذَّرَ الصَّرْفُ إِلَى الْكُلِّ.د امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه دا بيع ټولو قفيزونو اړخ ته ګرځول خکه متعذر دی. لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ وَالثَّمَنِ چې مبيع او ثمن دواړه مجهول دی. فَيُصْرَفُ إِلَى الْأَقَلِّ نو بيع به د ټولو نه کم اړخ ته ګرځولې شي وَهُوَ مَعْلُومٌ اودا معلومه هم ده وَإِلَّا أَنْ تَزُولَ الْجَهَالَةُ بِتَسْمِيَةِ جَمِيعِ الْقُفْزَانِ،مګر داچه جهالت د ټولو قفيزونو بيانولو أَوْ بِالْكَيْلِ فِي الْمَجْلِسِ يا په مجلس کې ناپ کاوه سره لرې شي وَصَارَ هٰذَا كَمَا لَوْ أَقَرَّ اودا داسې شوه.لکه يوکس اقرار اوکړو. وَقَالَ لِفُلَانٍ عَلَيَّ كُلُّ دِرْهَمٍ چې د فلانی سړی په ما باندې کُل درهم دی فَعَلَيْهِ دِرْهَمٌ وَاحِدٌ بِالْإِجْمَاعِ. نو په ده به بالاجماع يو درهم واجب وی.

حل اللغة:- ①الصبره:د غلې ډيرې، ② قفيز:يوه پيمانه، ③ قفزان:جمع د قفيز، ④جملة:ټول

تشريح:- مذهب الامام في المسئلة◉ د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزکه يو سړی د غلې يو ډيرې داسې اوونيل.او خرڅ ئې کړو.چه هر قفيز د يو درهم په عوض کې دې.نو صرف په يو قفيز کښې بيع جائز ده.خو که د عقد په دې مجلس کې ئې د ټولو قفيزنو مقدار بيان کړلو.يا ئې پيمانه اوکړله.نود ډيری بيع جائز ده.که د ټولو قفيزونو مقدار ئې

(١) القول الراجح: هو هذا قی الصاحبين رحمهما الله كذا في البحرالرائق (٥/٢٨٤) ورد المحتار(٤/٣١) والدرالمنتقى (٢/١٠) نقلاً عن القول الراجح (٢/١١)_



بيان کړلو.يا ئې بيان نه کړلو.

دليله◉ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه ثمن او مبيع دواړه مجهول دی.په دې وجه په پوره ډيری کې بيع جائز ګرځول متعذر دی.مبيع خو په دې وجه مجهول دې.چه د ډيری د ټولو قفيزونو مقدار معلوم نه دې.او هرکله چې مبيع مجهول دې.نو لازمی طور به ثمن هم مجهول وی.او دا جهالت مفضی الی المنازعه او د جګړې سبب دې.په دې طريقه چې بائع به اول د مشتري نه په ثمن باندې د قبضه مطالبه کوی.اوچونکه ثمن نامعلومه دې.په دې وجه به مشتري ثمن هغه وخته پورې نه ورکوی.ترکومه پورې چې ده ته دا معلومه نشی.چه په ما باندې څومره قدرې ثمن واجب دې.اود واجب شوی ثمن مقدار به هغه وخت معلوميږي.چه کله د مبيع مقدار معلوم شی.نو په دې طريقه به بائع اومشتري دواړه په نزاع او جګړه کې اخته شی.بهرحال د ثمن او مبيع مجهول کيدلو په وجه په ټولو قفيزونو کې بيع نافذ کول خو متعذر دی.په دې وجه د ټولو نه کم يعنی يو قفيز کوم چې معلوم دی.دې اړخ ته بيع ګډ ده.نو په ذکر شوې مسئله کې ئې چې هرکله «کل قفيز» اوونيل.حالانکه دا معلومه نه ده.چه واړه څومره قفيزه دی.نو صرف د يو قفيز بيع به جائز وی.خکه چې کمتر هم دا دی.خو که ذکر شوې جهالت د ټولو قفيزونو په بيانولو يا په مجلس کې دننه په کيل کاوه سره لرې شی.نو په پوره ډيری کې به بيع درست وی.او دا داسې ده.لکه چې يو کس اقرار کړې وی.چه د فلانی سړی په ما باندې کُل درهم دی.يعنی په لفظ د ،،کل ،، سره ئې مجهول اقرار اوکړو.نو په اتفاق سره به په ده باندې يو درهم واجب وی.

وَلَهُمَا أَنَّ الْجَهَالَةَ بِيَدِهِمَا إِزَالَتُهَا اود صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه جهالت لرې کول ددې دواړو په لاس کې دی وَمِثْلُهَا غَيْرُ مَانِعٍ اوداسې جهالت بيع جائز کول نه منع کوی كَمَا إِذَا بَاعَ عَبْدًا مِنْ عَبْدَيْنِ عَلَى أَنَّ الْمُشْتَرِيَ بِالْخِيَارِ لکه په دوې (دوه) غلامانو کې يو غلام په دې شرط سره خرڅ کړو.چه مشتري ته اختيار دې.

تشريح:- مذهب الصاحبين رحمهما الله◉په ذکر شوې مسئله کې د صاحبينو رحمهما الله په نيز بيع جائز ده په ذکر شوې مسئله کې مبيع يعنی د ټولو قفيزونو مقدار اګرچه مجهول دی.خو ددې جهالت ازاله د بائع او مشتري دواړو په لاس کې دې.خکه چې مبيع يعنی د ټولو قفيزونو مقدارچه لکه څنګه د بائع په ناپ کاوه سره معلوميږی.دغه ډول د مشتري په پيمانه کاوه سره هم معلوميږی.نو د مبيع جهالت لرې کول،د بائع او مشتري دواړو د اړخه ممکن دی.او هرکله چې دا جهالت لرې کول د مشتري اود بائع دواړو په لاس کې دی.نودا جهالت به مفضی الی النزاع نه وی.او هرکله چې دا جهالت مفضی الی النزاع نه دې.نود بيع د جواز لپاره به هم مانع نه وی.خکه چې د بيع د جواز لپاره هغه جهالت مانع وی.کوم چې جګړه پيدا کوی.او ،،مفضی الی المنازعه ،، وی.اود بيع ددې جهالت مثال داسې دې.لکه چې يو کس په خپلو دوې (دوه) غلامانو کې يو غلام په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه مشتري ته د يو غلام په متعين کاوه کې اختيار وی.که غواړی نودا واخلی.او که غواړی.نو دا بل يو واخلی.نو هرکله چې مشتري يو غلام خوښ کړی.نود بيع جهالت ختميږی.

ثُمَّ إِذَا جَازَ فِي قَفِيزٍ وَاحِدٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بيا هرکله چې د امام صاحب رحمه الله په نيز يو قفيز کې بيع جائز شوه فَلِلْمُشْتَرِي الْخِيَارُ نو مشتري ته اختيار دې لِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ عَلَيْهِ.خکه چې په ده باندې صفقه متفرق شوه.

تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چې هر کله په يو قفيز کې بيع جائز شوه.نو مشتري ته اختيار دې.چه دې يو قفيز واخلی. يا ئې وانخلی.خکه چې د مشتري په حق کې صفقه متفرق شوې ده.په دې طريقه چې په پوره ډيری کې يو قفيز باندې صفقه پاته ده.او په چا چې صفقه متفرق وی.چه دده رضامندی مختل (ګډه وډه ) شوې وی.په دې وجه ده ته د اخستلو اود نه اخستلو اختيار وی.پاتې شو دا سوال چې صفقه خو د بائع په حق کې هم متفرق شوې ده.نو ده ته هم خيارحاصليدل پکار دی.نو ددې خواب دادې.چه بې شکه په بائع باندې هم صفقه متفرق شوې ده.خو دا صفقه متفرق کيدل هم دده د اړخه واقع شوی دی.په دې طريقه چه بائع د ټولو قفيزونو مقدار بيانولو يا په مجلس کې د پيمانه کاوه نه بند شوې دې.نو هرکله چې تفريق د صفقه د بائع د اړخه راغلې دې.نو بائع به په دې

باندې يقينا راضي وي.او هركله چې بائع د صفقه په تفريق باندې راضي دې.نو د صفقه د تفريق په وجه بائع ته د اختيار وركاوه څه مطلب دې.يعني بائع ته به هيڅ اختيار نه وي.

> وَكَذَا إِذَا كِيلَ فِي الْمَجْلِسِ او هم دغه ډول كه په مجلس كي دا ډيرې ناپ كړې شو أَوْسَمَّى جُمْلَةَ قُفْزَانِهَا يا بائع ددې وارِه قفيزونه بيان كړل.نو ده ته به اختيار وي لِأَنَّهُ عَلِمَ ذَلِكَ الْآنَ فَلَهُ الْخِيَارُ ..څكه چې اوس ده ته دا معلوم شوى دى.په دې وجه ده ته اختيار دې.

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه دغه ډول كه پوره ډيرې ئې په مجلس كي پيمانه كړلو.يا بائع د ډيرى د ټولو قفيزونو مقدار بيان كړلو.نو بيا به هم مشترى ته اختيار وي.خودا اختيار به د تيرشوى علت په وجه نه وي.بلكه په دې وجه به وي.چه د مشترى په خيال كي ددې ډيرى مقداريوه اندازه وه.مثلا دده خيال وو.چه په دې ډيرى كي به سل قفيزه وي.او هم دومره تقريبا دده اړتيا وو.او هم د دومره روپو انتظام ورسره وو.اوس چې هركله روسته ئې دا ډيرې ناپ كړلو.يا بائع د ټولو قفيزونو مقدرا بيان كړلو.نو پته اولګيدله.چه وارِه قفيزونه د سلو نه زيات دى.يا كم دى.كه زيات وي.نو ددې درې صورتونه دى.① چې پوره په پوره د ثمن په عوض واخلى.② يا سل قفيزه د ثمن په عوض واخلى.او زياتى مفت واخلى.③ او يا زياتى پريږدى.او سل قفيزه واخلى. په ړومبى صورت كي خو په دې وجه ممكن نه دې.چه مشترى سره د سلو قفيزونه د زياتى لپاره رقم نشته.او دوهم صورت څكه ممكن نه دې.چه بائع د سلو قفيزو نه زياتى غله مفته ولې وركوى.او دريم صورت څكه ممكن نه دې.چه په دې كي په بائع باندې تفريق د صفقه لازميږى.او كه دا ډيرې د سلو قفيزو نه كم اوختلو.نو مشترى به دخپل اړتيا مطابق سل قفيزه پوره كاوه لپاره زياتى غله د بل خائې نه اخلى.اوس معلومه نه ده.چه د بل خائې غله ددې موافق ده.او كه نه ده.بهرحال ددې مشكلاتو په وجه مشترى ته اختيار دې. چې پوره ډيرې د «كل قفيز بدرهم» په حساب سره واخلى.يا پوره پريږدى.ددې خيار نوم خياركشف دې.څكه چې پوره مقدار كوم چې د عقد بيع په وخت معلوم نه وو.هغه اوس د بائع په بيانولو.يا په پيمانه كاوه سره معلوم شوې دې.

> كَمَا إِذَا رَآهُ لكه (مثلاً) مشترى چې كله مبيع اوګورى.نو خيار وى) وَلَمْ يَكُنْ رَآهُ وَقْتَ الْبَيْعِ حالانكه ده دا د بيع په وخت نه ووكتلې.

تشريح:- او دا داسې ده.لكه مثلا مشترى د عقدبيع په وخت مبيع ته نه وو كتلې.چه روسته ئې اوكتل.نو مشترى ته د اخستلو، يا د نه اخستلو خيارحاصل دې.دغه ډول په ذكر شوې مسئله كي به هم مشترى ته د اخستلو،او د نه اخستلو اختيار حاصل وى.

## د چيلو په رمه كښې د هر يوې وزه (چيلۍ) د يو درهم په مقابله كښې د بيع حكم

> قَالَ وَمَنْ بَاعَ قَطِيعَ غَنَمٍ كُلَّ شَاةٍ بِدِرْهَمٍ او چاچه د چيلو يوه رمه په عوض د يو درهم ديوې وزه په حساب سره خرڅه كړله. فَسَدَ الْبَيْعُ فِي جَمِيعِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ټولو چيلو بيع فاسد ده وَكَذَلِكَ مَنْ بَاعَ ثَوْبًا مُذَارَعَةً كُلَّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ اوهم دغه ډول كه دګزونو په ناپ سره ئې يوه كپړه په فى ګز د يو درهم په حساب خرڅه كړله وَلَمْ يُسَمِّ جُمْلَةَ الذُّرْعَانِ .او وارِه ګزونه ئې بيان نكړل وَكَذَا كُلُّ مَعْدُودٍ مُتَفَاوِتٍ اوهم دا حكم د هرمعدود متفاوت شئ دې وَعِنْدَهُمَا يَجُوزُ فِي الْكُلِّ (1) اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د ټولو بيع جائز ده لِمَا قُلْنَا دهغه دليل په وجه كوم چې مونږ بيان كړې دې وَعِنْدَهُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْوَاحِدِ اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دا بيع صرف يو اړخ ته راجع وى لِمَا بَيَّنَّا هغه دليل په وجه كوم چې مونږ بيان كړو غَيْرَ أَنَّ بَيْعَ شَاةٍ مِنْ قَطِيعِ غَنَمٍ وَذِرَاعٍ مِنْ ثَوْبٍ لَا يَجُوزُ لِلتَّفَاوُتِ مګر داچه په رمه كي يوه وزه او

(1) القول الراجح: هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٥\٤٧٦) وردالمحتار(٤\٣٣) وبحر(٥\٢٨٥)نقلاً عن القول الراجح (٣١٢)-



> په تهان كي د يوګز بيع هم د تفاوت په وجه جائز نه ده وَبَيْعُ قَفِيزٍ مِنْ صُبْرَةٍ يَجُوزُ لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ او په ډيرى كي د يو قفيز بيع د تفاوت د نه كيدلو په وجه جائز ده. فَلَا تُفْضِي الْجَهَالَةُ إِلَى الْمُنَازَعَةِ فِيهِ انوچونكه په ډيرى كي ديو قفيز بيع كي جهالت مفضى الى المنازعه نه دې وَتُفْضِي إِلَيْهَا فِي الْأَوَّلِ.او په رمه كي يوه وزه او په تهان كي د يوګز بيع كي جهالت د مبيع مفضى الى المنازعه دې فَوَضَحَ الْفَرْقُ.په دې وجه توپير ښكاره شو.

حل اللغة:- ① قطيع،كنډك،② غنم،ګډه،③ ثوب،جامه،④ المزارعة،يوخيز د ګز په حساب سره وركول

تشريح:- ①د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزكه يوكس د چيلو رمه داسې اوونيل.او خرڅه ئې كړه.چه هره وزه د يو درهم په عوض ده.نو په ټولو چيلو كي بيع فاسد ده.يا ئې د كپړې يو پلنډه خرڅ كړلو.په داسې ونيلو،چه هر ګز د يو درهم په عوض دې.اود ټولو ګزونو تعداد،اود ټولو ګزونو ثمن ئې بيان نكړو.نو په دې صورت كي به هم په ټولو ګزونوكي بيع فاسد وى.اوهم دغه ډول هر يو داسې شئ چې هغه په شمارلو باندې خرڅولې شى.او ددې په افرادو كي د قيمت په اعتبار سره تفاوت (كمې زياتې ) هم وى.نو ددې بيع هم جائز نه ده.لكه تربوزه، كدو،اوږدكدو( يا تينډه).

دليله® د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې چه د مبيع ( يعنى د ټولو چيلو مقدرا ،اود وارِه پلنډه د ګزونو مقدار) اود ثمن مجهول كيدلو په وجه د ټولو چيلو اود ټولو ګزونو بيع جائز ګرځول خو متعذر او ناممكن دى.په دې وجه اقل يعنى يو اړخ ته به بيع ګرځولې شى.نو په رمه كي د يوې وزه بيع او په پلنډه كي به د يوګز بيع جائز وى.خو چونكه د رمې په چيلوكي د قيمت په اعتبار سره ډير زيات توپير وى.د څه چيلو قيمت زيات وى.اود څه چيلو كم وى.دغه ډول د پلنډه په ګزونوكي هم تفاوت وى.خودا تفاوت د هغه پلنډه په ګزونو كي وى.كوم چې په لاس سره جوړولې شى.نن صبا چې كوم تانونه په ميلونو كي تيارولې شى.ددې په طرفونو ( غاړو) كي تفاوت نه وى.بهرحال په چيلو،اود پلنډه په طرفونو كي د تفاوت په وجه په يوه وزه او يو ګزكي به هم بيع جائز نه وى.اود غلې د ډيرى په قفيزونوكي چونكه هيڅ تفاوت نه وى.په دې وجه په ډير كي به د يو قفيز بيع جائز وى.

۞ حاصل داچه په چيلو،اود پلنډه په طرفونوكي چونكه د قيمت په اعتبارسره تفاوت وى.په دې وجه چې په رمه كي د يوې وزه او په پلنډه كي د يو ګز،كوم چې مبيع ګرځولې شى.هغه مجهول دې.اومجهول هم داسې چې جګړه پيدا كونكې دې.په دې طريقه چې بائع به دكم قيمت چيلۍ، او په پلنډه كي به يو ګز وركوى.اود مشترى پوره كوښښ به دا وى.چه قيمتى نه قيمتى چيلۍ،اوپه پلنډه كي يو ګز واخلى.او د ډيرى وارِه قفيزونه چونكه د قيمت په اعتبار سره مساوى او برابر وى.په دې وجه په ډيرى كي يو قفيز اګرچه مجهول دې.خو داسې مجهول نه دې.چه ،، مفضى الى النزاع،، وى.نو ددې توپير په بنا (بنياد) باندې حضرت امام الهمام قدوې (دوه) الانام عالى مقام مثواه جنت المقام ابوحنيفه رحمه الله نورالله مرقده، په ډيرى كي د يو قفيز بيع جائز اوګرځوله.او په رمه كي ئې د يوې چيلۍ،او په پلنډه كي ئې د يوګز بيع هم ناجائز اوګرځوله.

②مذهب الصاحبين رحمهما الله ®صاحبين رحمهما الله فرمائى.چه د چيلو د پوره رمې، اود كپړو د پوره پلنډه بيع جائز ده.

دليهما®او دليل وړاندې تيرشوې دې.چه مبيع او ثمن اګرچه مجهول دى.خو ددې جهالت لرې كول، پخپله ددوى په لاس كي دى.په دې طريقه چې د رمې وزه اوشمارى.او پلنډه ناپ كړى.يا بائع ددې مقدار بيان كړى.اود داسې جهالت لرې كول،چه د عاقدينو په لاس كي وى.د بيع د جواز لپاره مانع نه جوړيږى.په دې وجه دلته د پوره رمې اود پوره پلنډه بيع جائز ده.

## د غلې يو ډيرې د سلو قفيزو په سلو درهمو د بدل په شرط سره په اخستلوكښې د كمې زياتې حكم

> قَالَ وَمَنْ ابْتَاعَ صُبْرَةَ طَعَامٍ عَلَى أَنَّهَا مِائَةُ قَفِيزٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ قدورى رحمه الله فرمائى.اوكوم كس چې د غلې ډيرې په دې شرط واخستلو.چه سل قفيزه د سل درهمو په عوض دى فَوَجَدَهَا أَقَلَّ بيا مشترى دا كم اوموندل. كَانَ الْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ

نو مشتری ته به اختیار وی. إِنْ شَاءَ أَخَذَ الْمَوْجُودَ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ چې موجوده مقدار ددې برخې (حصې) د ثمن په عوض واخلي وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ الْبَيْعَ. او كه غواړي نو بيع دې فسخ كړي.

حل اللغة:- ① الابتاع:اخستل، ② صبرة:ډيرې، ③ المائة:سل، ④ قفيز:د غلې پيمانه

تشريح:- صورت د مسئلې دادې چه يو سړى د غلې يو ډيرې په دې شرط باندې واخستلو. چه دا سل قفيزه دى. د سلو درهمو په عوض باندې. ګويا د سلو قفيزونو معامله ئې د سلو درهمو په عوض اوكړله. بيا ئې چې ناپ كړله. نو پته اولګيدله. چې د سلو قفيزونو نه كم دى. مثلاً لس كم سل قفيزه وو. نو مشتری ته به اختيار وى. چه د موجوده مقدار يعنى د لس كم سل قفيزه ددې د برخې (حصې) په ثمن، يعنى د لس كم سلو روپو په عوض كې واخلي. او كه غواړي. نو بيع دې فسخ كړي.

نوټ① دلته د اصل او وصف په مينځ كې توپير پيژندل ضرورى دى ددې تفصيل دا دې كه يو شئ په تكړې كاوه سره عيب داره كيږي. نو كمې او زياتې په دې كې وصف وى. او كه تكړې كاوه سره نه عيب داره كيږي. نو زيادت او نقصان په دې كې اصل دې. نو ،، قلت او كثرت ،، په مكيلات او موزونات كې اصل دې. او ،، ذراع ،، (ګز) په مذروعاتو كې وصف دې. دويمه خبره دا په ذهن كې كينوئ چه د اصل يعنى د قدر په مقابله كې ثمن راځى. يعنى د اصل څيزيه كموالي او زياتوالي سره ثمن كميږي او زياتيږي نه.

لِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ عَلَيْهِ قَبْلَ التَّمَامِ خكه چې د عقد تمام كيدو نه وړاندې په ده باندې صفقه متفرق شوه فَلَمْ يَتِمَّ رِضَاهُ بِالْمَوْجُودِ نو په موجوده مقدار سره دده رضامندى پوره نشوه.

حل اللغة:- ① التفرق:جدا والې، ② تمام:پوره كيدل، ③ اكثر:زيات، ④ معين:معلوم

تشريح:- ددې اختيار دليل دادې. چه د عقد تمام كيدلو نه وړاندې په مشتری باندې صفقه متفرق شوې ده. په دې طريقه چې معامله شوې وه. د سلو قفيزونو، او دلته كې موجود دى. لس كم سل قفيزه. او هم دا د صفقه بدليدل دى. او چونكه مشتری په مبيع باندې قبضه نه ده كړې. او دده رضامندى نه ده مكمل شوې. په دې وجه عقد هم تمام شوې نه دې. نو ګويا چې د عقد تماميدلو نه وړاندې صفقه متفرق شوې ده. او هر كله چې صفقه متفرق شوې ده. نو په موجوده مقدار باندې به د مشتری رضامندى مكمله نه وى. او هر كله چې د مشتری رضامندى مكمله نشوه. نو ده ته به د اخستلو، اود نه اخستلو اختيار وى.

وَإِنْ وَجَدَهَا أَكْثَرَ او كه مشتری ډيرې دسل قفيزو نه زيات اوموندلو فَالزِّيَادَةُ لِلْبَائِعِ نو زياتوالې به د بائع وى لِأَنَّ الْبَيْعَ وَقَعَ عَلَى مِقْدَارٍ مُعَيَّنٍ خكه چې بيع په يو معين مقدار باندې واقع شوې ده وَالْقَدْرُ لَيْسَ بِوَصْفٍ. او مقدار وصف نه دې.

تشريح:- او كه مشتری دا ډيرې د سلو قفيزونو نه زيات اوموندلو. نو زياتوالې به د بائع لپاره وى. خكه چې بيع په معين مقدار باندې واقع شوې ده. او كوم شئ چې په معين مقدار باندې واقع شى. هغه ددې نه علاوه ته ګډ نه وى. مګر داچه دا زياتى د قبيلې د وصف څخې وى. نو دې ته به هم بيع ګډ وى او په معين مقدار باندې چې كوم زياتى مقدار دې هغه وصف نه دې بلكه اصل، اود مقدار د قبيلې څخې دې. په دې وجه به بيع دې زياتى مقدار ته شامله نه وى. او هر كله چې زياتى مقدار ته بيع شامله نشوه. نو زياتوالې به د بائع لپاره وى. د مشتری لپاره به نه وى. خكه چې د مشتری لپاره هم هغه شئ وى. كوم ته چې عقد د بيع ګډ وى.

**يوه كپړه يا يوه مځكه د يو معين مقدار په خيال، په معين عوض سره اخستلوكښې د كمې زياتې حكم**

وَمَنِ اشْتَرٰى ثَوْبًا عَلٰى أَنَّهُ عَشَرَةُ أَذْرُعٍ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ او كه يو كس يوه كپړه په دې شرط باندې واخستله. چه دا لس ګزه ده. د لس درهمو په عوض أَوْ أَرْضًا عَلٰى أَنَّهَا مِائَةُ ذِرَاعٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ يا ئې څه مځكه واخستله. په دې شرط چې دا سل ګزه ده. د سل درهمو په عوض فَوَجَدَهَا أَقَلَّ بيا مشتری داكم بيا موندله فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِجُمْلَةِ الثَّمَنِ نو ده ته اختيار دې. كه غواړي. نودا دې د پوره ثمن په عوض واخلي وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ. او كه غواړي نو ترك دې كړي.



حل اللغة:- ① ثوب:جامه، ② الارض:مځكه، ③ ذراع:ګز، ④ الترك:پريخودل

تشريح:- صورت د مسئلې دادې چه يو سړى يوه كپړه په دې شرط باندې واخستله. چه دا لس ګزه د لسو درهمو په عوض كې دى. يا ئې مځكه په دې شرط باندې واخستله چه دا سل ګزه د سلو درهمو په عوض كې ده. خو هر كله ئې چې دا ناپ كړله. نودا د بيان شوى ګزونو نه كمه اوختله. نو په داسې صورت كې به مشتری ته اختيار وى. كه غواړي. نودا دې د پوره ثمن په عوض سره واخلي. او كه غواړي. نو بيع دې فسخ كړي. البته مشتری ته به د مقرر ثمن نه د هيڅ كمولو حق حاصل نه وى.

وَأَنَّ الذِّرَاعَ وَصْفٌ فِي الثَّوْبِ خكه چې ګز په كپړه كې يو وصف دې أَلَا يَرٰى أَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنِ الطُّولِ وَالْعَرْضِ وَالْوَصْفُ آيا نه ګورې، چه ګز د اوږدوالي او پلنوالي نوم دې. لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ. اود وصف په مقابله كې د ثمن هيڅ برخه نه وى كَأَطْرَافِ الْحَيَوَانِ لكه د ځاروى لاسونه پښې وغيره فَلِهٰذَا يَأْخُذُهُ بِكُلِّ الثَّمَنِ، نو په دې وجه به دا د پوره ثمن په عوض اخلي

حل اللغة:- ① الطول:اوږدوالي، ② العرض:پلنوالي، ③ الاطراف:جمع د طرف، اندام، ④ الحيوان:ځاروى

تشريح:- دليل دادې. چه په كپړو كې ذراع (ګز) وصف وى. لكه تاسو اوګورئ. چه ګز د اوږدوالي او لنډوالي نوم دې. او اوګدوالي لنډوالي د اوصافو د قبيلې څخې دى. نو معلومه شوه. چه ګز په كپړو او مځكه كې وصف دې. او د وصف په مقابله كې ثمن نه راځى. يعنى د اوصافو د كموالي او زياتوالي په وجه په ثمن كې كمې زياتى نه راځى. په دې وجه كه مشتری اوغواړي. نو موجوده مځكه يا موجوده كپړې د پوره ثمن په عوض واخلي. او ددې مثال داسې دې. لكه مثلاً يو كس يوه وينځه واخستله. بيا دا وينځه د بائع په قبضه كې وه. چه په يوه سترګه نابينا (ړنده) شوه. نو مشتری به په ثمن كې د څه كمولو اختيار نه وى.

بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د ړومبئ مسئلې، لِأَنَّ الْمِقْدَارَ يُقَابِلُهُ الثَّمَنُ خكه چې د مقدار په مقابله كې ثمن وى فَلِهٰذَا يَأْخُذُهُ بِحِصَّتِهِ په دې وجه به دا ددې برخې (حصې) د ثمن په عوض اخلي إِلَّا أَنَّهُ يَتَخَيَّرُ مګر داچه مشتری ته به اختيار وى لِفَوَاتِ الْوَصْفِ الْمَذْكُورِ لِتَغَيُّرِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ. خكه چې د معقود عليه متغير كيدلو په وجه ذكرشوې وصف فوت شوې دې فَيَخْتَلُّ الرِّضَا. خكه به د مشتری رضامندى مختل كيږي.

حل اللغة:- ① المقابلة:مقابله كول، ② الفوات:فوت كيدل، ③ التغير:بدليدل، ④ اختلال:خلل پيدا كيدل

تشريح:- په خلاف د اولې مسئلې، خكه چې په غله كې مقدار وصف نه دې. بلكه اصل دې. اود اصل په مقابله كې ثمن راځى. په دې وجه په دې صورت كې مشتری د غلې موجوده مقدار، كه اوغواړي. نو ددې برخې (حصې) د ثمن په عوض كې به اخلي. بهرحال د زمكې اود كپړې د كموالي په وجه مشتری په ثمن كې څو كموالې نشى كولې. البته ده ته د نه اخستلو اختيار ضرور وى. خكه چې ذكر شوې وصف (ذراع) د فوت كيدلو په وجه معقود عليه متغير شوې دې. او هر كله چې معقود عليه متغير شوې دې. نود مشتری په رضامندئ كې خلل واقع شو. اود مشتری په رضامندئ كې په مختل كيدلو سره مشتری ته اختيار وى. چه دې بيع نافذه كړي. يا ئې فسخ كړي.

قَالَ وَإِنْ وَجَدَهَا أَكْثَرَ مِنَ الذِّرَاعِ الَّذِي سَمَّاهُ او كه مشتری دا ددې ګزونو نه زياته اوموندله. كوم ئې چې بيان كړې وو فَهُوَ لِلْمُشْتَرِي نودا زياتى به د مشتری لپاره وى وَلَا خِيَارَ لِلْبَائِعِ. او بائع ته هيڅ اختيار نشته لِأَنَّهُ صِفَةٌ خكه چې ګز يو صفت دې فَكَانَ بِمَنْزِلَتِهَا إِذَا بَاعَهُ مَعِيبًا د هغه صورت په مرتبه كې شو. چه بائع يو عيب دار شئ خرڅ كړو فَإِذَا هُوَ سَلِيمٌ نودا بيا دا بې عيب اوختلو

حل اللغة:- ① تسمية:نوم ول (نامدار) كول، ② الخيار:اختيار، ③ منزلة:پشان، ④ معيب:عيبژن

تشريح:- او كه مځكه يا كپړه د مقرر ګزونو نه زياته اوختله. نودا زياتوالې به د مشتری لپاره وى. او بائع ته به هيڅ اختيار نه وى. خكه چې ذراع (ګز) يو وصف دې. او د وصف په مقابله كې د ثمن هيڅ برخه نه راځى. په دې وجه د ګزونو په زياتيدلو سره په ثمن كې اضافه نشى كيدلې. اودا داسې ده. لكه مثلاً يو غلام ئې په دې خيال

واخستلو.چه دا نابينا دې.او هم په دې حساب سره ئې ثمن مقرر کړو.بيا روسته معلومه شوه.چه دې خو بينا دې،( يعنى ړوند نه دې) نو د بصارت ددې وصف په زياتيدلو سره په ثمن کي اضافه نه کيږی.او بائع ته به هيڅ اختيار نه وی.

**يو معين مقدار کپړه د معين درهمو په بدله کښې د کمې زياتی حکم**

وَلَوْقَالَ بِعْتُكَهَا عَلٰى أَنَّهَا مِائَةُ ذِرَاعٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ او که بائع اوونيل.ما په تا دا کپړه په دې شرط خرڅه کړله.چه سل گزه د سل درهمو په عوض كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ په دې حساب چې هرگز د يو درهم په عوض دې فَوَجَدَهَا نَاقِصَةً مشتری دا کم اوموندلو فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ نو مشتری ته اختيار دې. إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِحِصَّتِهَا مِنَ الثَّمَنِ که غواړی.نو موجود( کپړه) ددې برخې (حصې) د ثمن په عوض واخلی وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ.او که غواړی.ترک دې کړی.

حل اللغة:- ①المائة،سل، ②الذراع،گز، ③الترکه پريخودل، ④نقص،نقصان،

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يو سړی په دې شرط يوه کپړه واخستله.چه سل گزه پلنډه د سلو درهمو په عوض کي وی.په دې حساب چې يو گز به د يو درهم په عوض کي وی.بيا ئې چې دا پلنډه ناپ کړو.نودا د سلو گزو نه کم اوختلو.نو په داسې صورت کي مشتری ته اختيار دې.که غواړی.نو موجوده کپړه ددې د برخې (حصې) د ثمن په عوض کي واخلی.او که غواړی.نو نه دې اخلی.

لِأَنَّ الْوَصْفَ وَإِنْ كَانَ تَابِعًا خکه د ذراع وصف اگرچه تابع وو لٰكِنَّهُ صَارَ أَصْلًا بِإِفْرَادِهِ بِذِكْرِ الثَّمَنِ خو ددې ثمن جلا ذکر کاوه په وجه دا اصل جوړ شو فَيَنْزِلُ كُلُّ ذِرَاعٍ مَنْزِلَةَ ثَوْبٍ.نوهر گز د جلا کپړې په مرتبه کي راکوز کړې شو.

تشريح:- د برخې (حصې) د ثمن په عوض کي د اخستلو دليل دادې.چه ذراع اگرچه تابع او وصف دې.خود ،،كل ذراع بدرهم ،، په ذريعه، چونکه د هر ذراع ثمن جلا جلا ذکرشوې دې.خکه ذراع اصل شو.خکه چې د ثمن د څه شی په مقابله کي راتگ دې شی د اصل کيدلو علامت دې.نود هر ذراع په مقابله کي د ،،بدرهم،، په ذريعه د ثمن بيانولو وجه، هر ذراع په منزله د کپړې اصل دې.اودا داسې دې.لکه چې ده سل کپړې خرڅ کړی دی.او کپړې چونکه اصل دی.په دې وجه ددې په مقابله کي ثمن راځی.او هرکله چې ددې په مقابله کي ثمن راځی.نو په څومره اندازه چې گزونه کم شی.هم په دومره اندازه به ثمن هم کميږی.

وَهٰذَا لِأَنَّهُ اودا حکم خکه دې لَوْأَخَذَهُ بِكُلِّ الثَّمَنِ که موجوده د کُل ثمن په عوض اخلی لَمْ يَكُنْ آخِذًا لِكُلِّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ نو دې به هرگز د يو درهم په حساب سره اخستونکې نه وی...

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه داحکم خکه ورکړې شوې دې.که مشتری په موجوده گزونو مثلا لس کم سل گزه د ،،کل ثمن ،، يعنی د سلو درهمو په عوض واخلی.نو دې به د ،،کل ذراع بدرهم ،، شرط سره اخستونکې نه وی.حالانکه بائع په دې شرط خرڅ کړې دی.په دې وجه اووئيلی شو.چه په دې صورت کي څومره قدرې گزونه کم شی.هم په دومره اندازه به ثمن هم کميږی.او مشتری ته اختيار په دې وجه ورکړې شوې دې.چه د نقصان په صورت کي په مشتری باندې صفقه متفرق شوې ده.

وَإِنْ وَجَدَهَا او که مشتری دا زياتی اوموندله زَائِدَةً فَهُوَ بِالْخِيَارِ نوده ته اختيار دې إِنْ شَاءَ أَخَذَ الْجَمِيعَ كُلَّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ که غواړی.نو پوره کپړه په حساب د هر گز د يودرهم په عوض واخلی وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ الْبَيْعَ او که غواړی.نو بيع دې فسخ کړی لِأَنَّهُ إِنْ حَصَلَ لَهُ الزِّيَادَةُ فِي الذَّرْعِ خکه که ده ته په گزونوکي زياتوالې حاصل شو تَلْزَمُهُ زِيَادَةُ الثَّمَنِ.نود ثمن زياتوالې هم په ده باندې لازم شوې دې. فَكَانَ نَفْعًا يَشُوبُهُ ضَرَرٌ نودا داسې نفع ده.چه دې سره ضرر ملاؤ شوې دې فَيَتَخَيَّرُ.خکه به مشتری ته اختيار وی.

حل اللغة:- ①الشوب،گډو ډ کيدل، ②لزوم،لازم کيدل، ③الصيرورة،گرځيدل، ④الاخذ،اخستل



تشريح:- اوکه مشتری دا گزونه د سلو نه زيات اوموندل.نو بيا هم مشتری ته اختيار دې.که غواړی نو وارۀ گزونه دې په حساب د هرگز د هر درهم په عوض واخلی.او که غواړی. نو بيع دې فسخ کړی.اودا اختيار په دې وجه دې.چه مشتری ته که څه گزونه د سلو نه زيات ملاويږی.نو په ده باندې د ثمن زياتوالې هم لازميږی.نو دا داسې نفع شوه.چه په دې کي ضرر هم ملاؤ دې.او په داسې صورت کي خيار حاصل وی.په دې وجه مشتری ته په دې صورت کي هم خيار حاصل وی.

وَإِنَّمَا يَلْزَمُهُ الزِّيَادَةُ او په مشتری باندې د ثمن زياتوالې د هغه دليل په وجه لازم شوې دې. لِمَا بَيَّنَّا کوم چې مونږ بيان کړې دې أَنَّهُ صَارَ أَصْلًا چې ذراع اصل شو وَلَوْأَخَذَهُ بِالْأَقَلِّ.اوکه دا د کم قيمت په عوض اخلی لَمْ يَكُنْ آخِذًا بِالْمَشْرُوطِ.نو هرگز د درهم په شرط اخستونکې نه وی

تشريح:- اوپه مشتری باندې د سلو درهمو نه زياتی ثمن په دې وجه واجب شوې دې.چه د ذراع په مقابله کي چونکه ثمن ذکر شوې دې.په دې وجه ذراع په منزله د اصل شو.اود اصل مبيع په زياتوالی سره ثمن زياتيږی.په دې وجه که مشتری د ټولو گزونو کپړه اخستلو فيصله اوکړی.نو په ده به د زياتی ثمن هم واجب وی.که بالفرض مشتری د سلو گزو نه زياتی پلنډه د سلو درهمو په عوض واخلی.نو په دې صورت کي به دا د ﴿کل ذراع بدرهم﴾ شرط موافق اخستونکې نه وی.حالانکه بائع په دې شرط سره خرڅ کړې دې.نود ﴿کل ذراع بدرهم﴾ شرط پوره کاوه لپاره هم په مشتری باندې هم په دې اندازه زيات ثمن واجب وی.په څومره اندازه چې ذراع د سلو نه زياتی وی.

**د کور يا حمام په سلو گزونو کښې د لسو گزو د اخستلو حکم**

وَمَنِ اشْتَرٰى عَشَرَةَ أَذْرُعٍ مِنْ مِائَةِ ذِرَاعٍ مِنْ دَارٍ أَوْحَمَّامٍ وکوم کس چې د يو کور يا حمام په سلو گزونوکي لس گزه واخستل فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز بيع فاسد ده وَقَالَا: هُوَجَائِزٌ[1] او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه بيع جائز ده وَإِنِ اشْتَرٰى عَشَرَةَ أَسْهُمٍ مِنْ مِائَةِ سَهْمٍ.اوکه ده په سلو حصوکي لس برخې (حصې) واخستلې جَازَ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نود درې واړو ( امامانو) په نيز جائز دي لَهُمَا أَنَّ عَشَرَةَ أَذْرُعٍ مِنْ مِائَةِ ذِرَاعٍ عُشْرُ الدَّارِ.د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه په سلوگزونو کي لس گزه د کور لسمه برخه فَأَشْبَهَ عَشَرَةَ أَسْهُمٍ. ده.نو( په سلوحصو کي ) د لس برخو مشابه شو وَلَهُ أَنَّ الذِّرَاعَ اسْمٌ لِمَا يُذْرَعُ بِهِ.اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه ذراع د هغه شی نوم دې.چه په هغې سره ناپ کړې شی. وَاسْتُعِيرَ لِمَا يَحِلُّهُ الذِّرَاعُ او مستعار واخستلې شو.د هغه شی لپاره په کوم چې ذراع واقع شوې وی. وَهُوَالْمُعَيَّنُ دُونَ الْمُشَاعِ حالانکه هغه معين دې.غيرمعين نه دې. وَذٰلِكَ غَيْرُمَعْلُومٍ بِخِلَافِ السَّهْمِ اودا معلومه نه ده.په خلاف د حصو.

تشريح:- د حضرت امام اعظم رحمه الله که يو سړې د يو کور يا حمام په سلو گزونو کي لس گزونه واخستل.نو په نيز به دا بيع فاسد وی. دليل دادې.چه ذراع د هغه آله او پيمانې نوم دې.چه په دې سره يو شی ناپ کولې شی.خو دلته کي ددې مراد اخستل خو ناممکن نه دی.خکه چې مبيع هغه آله نه ده.بلکه د کور يا حمام يوه برخه مبيع دې.نو هرکله چې د پيمائش آله مراد اخستل ممکن نه دی.نو مجازا به هغه محل مراد وی.کوم چې ناپ کولې شی. او هغه محل معين مشخص دې.مشاع ( غير معين ) نه دې.خکه چې هرکله يو شی ناپ کولې شی.نو هغه به په يقين سره معين کيږی.خود معين کاوه باوجود به مجهول وی.خکه چې معلومه نه ده.چه دا لس گزه کور د لويديخ په اړخ دې.او که د مشرق په اړخ کي دې.يا په بل کوم اړخ کي دې.اود مکان په اطرافوکي چونکه په بنه والی او په ماليت کي متفاوت وی.په دې وجه ددې قيمتونه مختلف وی.اود قيمتونو د مختلف کيدلو په وجه دا جهالت ،، مفضی الی المنازعه ،، وی.په دې طريقه چې مشتری به وائی.چه زه د مشرق په اړخ لس گزه اخلم.او بائع به لويديخ اړخ ته

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله لان قولهما إستحسان والفقهاء يترجحون الإستحسان على القياس وقال صاحب القول الراجح لكن الفتوى على قول أبى حنيفة فى زماننا أليق فى هذه المسئلة (بيع الداروالحمام) إلخ انظرالقول الراجح (۲/٤)_

وركوي.يا ددې په عكس.او داسې جهالت كوم چې مفضى الى النزاع وي.مفسد د بيع دې.په دې وجه به په دې صورت كې دابيع فاسده وي.په خلاف ددې چې په سلو برخو كې د لسو برخو بيع شوې وي.ځكه چې لس برخې (حصې) په پوره كور كې شائع او خورې شوي دي.نود لسو برخو والا،او د لس كم سلو برخو والا به دخپلې برخې (حصې) په اندازه په پوره مكان كې شريك وي.يعنى د لسو برخو مالك به ددې كور نه د (۱/۱۰) لسمه برخه نفع اوچتوي.اود لس كم سلو برخو والا ته به دا اختيار نه وي. چې دې د لسو برخو والا مالك ته د كور يو ځائې مقرر وركړي.بهرحال هر كله چې دلسو برخو مالك په پوره كور كې د (۱/۱۰)حصې شريك دې.نو په دې صورت كې جهالت خو اوموندې شو.خودا جهالت مفضى الى المنازعه نه دې.ځكه چې جګړه هغه وخت پيدا كيږي.چه كله كور تقسيميږي.او دلته كې صورت دادې.چه دې صرف د (۱/۱۰) د نفعې شريك دې ددې تفصيل نه ښكاره شوه.چه په سلو ګزونو كې په لسو ګزونو كې داسې جهالت دې.كوم چې مفضى الى المنازعه دې.او په سلو برخو كې په لسو برخو كې چې كوم جهالت دې.دا مفضى الى المنازعه نه دې.نو په دې توپير سره په يو بل باندې قياس كول څنګه درست دي.

**مذهب الصاحبين** رحمهما الله⊙اودصاحبينو رحمهما الله په نيز جائز ده.او كه په سلو برخو كې لس برخې (حصې) واخلي.نود درې وارو حضراتو په نيز دا بيع جائز ده.حاصل داشو.چه په سلو برخو كې د لسو برخو اخستل خو بالاتفاق جائز دى.خو په سلو ګزونوكې لس ګزه اخستل،د امام صاحب رحمه الله په نيز فاسد دى.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دى.

**دليلهما**⊙د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه په سلو ګزونوكې لس ګزه د كور لسمه برخه ده.نو په سلو ګزونوكې لس ګزه اخستل، په سلو برخو كې د لسو برخو اخستلو مشابه شو.او په سلوحصوكې د لسو برخو اخستل، بالاتفاق جائز دى.نو په سلوګزونوكې لس ګزه اخستل به هم جائز وي.

> وَلَافَرْقَ عِنْدَأَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز هيڅ توپير نشته بَيْنَ مَاإِذَاعَلِمَ مِنْ جُمْلَةِالذِّرَاعَانِ كه ددې كور) وارډ ګزونه معلوم وي أَوْلَمْ يَعْلَم كه معلوم نه وي وَهُوَالصَّحِيْحُ (.او.هم د صحيح ده لِبَقَاءِالْجَهَالَةِ ځكه چې جهالت پاتته دې. خِلَافًالِمَايَقُوْلُهُ الْخَصَّافُ ، په خلاف د امام خصاف د قول

**تشريح:**- ددې عبارت نه د علامه مرغيناني رحمه الله مقصد دادې.چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دواړو صورتونو كې يو شان دې.كه د كور د ټولو ګزونو علم وي.او كه د ټولو ګزونو علم نه وي.د علم صورت خوهم دغه دې.چه مشترى اووائي.چه ما ددې كور په سلو ګزونو كې لس ګزونه واخستل.يا بائع اووئيل.چه ما ددې كور په سلو ګزونوكې لس ګزونه خرڅ كړل.اود علم نه كيدلو صورت دادې.چه مشترى اووائى.ما ددې كور لس ګزونه واخستل.يا بائع اووائى.ما ددې كور نه لس ګزونه خرڅ كړل. بهرحال د ټولو ګزونو علم وي.يا د ټولو ګزونو علم نه وي.په دواړه صورتونوكې د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز بيع فاسد ده.هم دا صحيح قول دې.ځكه چې په سلو ګزونوكې لس ګزه په دواړو صورتونوكې مجهول دى.اود بيع مجهول كيدل، د بيع د جواز مانع دې.خو امام خصاف رحمه الله فرمائى.كه د ټولوګزونو علم نه وي.بيا خو به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز فاسد وي.ګنى فاسد به نه دى.

### د كپړو پنډ د لسو كپړو په شرط سره اخستلوكښې د كمي زياتي حكم

> وَلَوِاشْتَرَى عِدْلًا عَلَى أَنَّهُ عَشَرَةُ أَثْوَابٍ او كه د كپړې يو پنډ ( ګانړې) ئې په دې شرط واخستله.چه دا لس تهانه دى فَإِذَا هُوَتِسْعَةٌ أَوْأَحَدَعَشَرَ بيا نهه يايوو لس تانونه اوختل فَسَدَالْبَيْعُ نو بيع فاسد ده لِجَهَالَةِالْمَبِيْعِ أَوِالثَّمَنِ.ځكه چې مبيع مجهول دي.يا ثمن مجهول دى.

**حل اللغة:**- ①عدل:د كپړو پنډ،②عشرة:لس،③اثواب:جمع د ثوب،جامې④،تبيين:بيانول

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.كه يو سړى د كپړو يو پنډ په دې شرط باندې واخستلو.چه په دې كې لس تانه دى.او د لس درهمو په عوض ئې واخستلو.خود هر پلنډه ئې خانله ثمن بيان نكړو.بيا ئې پنډ پرانستلو .نوپه دې



كې نهه تانه، يا يوولس تانه اوختل.نو په دې دواړو صورتونوكې بيع فاسد ده.ځكه چې د نهه تانونو په صورت كې ثمن مجهول دې.اود يوولس تانونو په صورت كې مبيع مجهول دې.د نهه تانونو په صورت كې ثمن ځكه مجهول دې.چه يو پلنډه كوم چې غائب دې.د هغې ثمن ګمول دى.خو ددې يو پلنډه ثمن مجهول دې.ځكه چې د هر پلنډه ثمن چونكه جلا جلا نه دې بيان شوې.ځكه چې دا معلومه نه ده.چه دا اعلى ډول وو.يا د اوسط درجې والاوو. يا ردى او بې كاره ډول وو.يعنى دا معلومه نه ده.چه د كومې درجې پلنډه قيمت كم كړې شي.نو هر كله چې د غيرموجود پلنډه د برخې (حصې) ثمن مجهول شو.نود پاته نهو ثمن هم مجهول شو.اود ثمن مجهول كيدلو په صورت كې بيع فاسده وي.په دې وجه به په دې صورت كې بيع فاسده وي.اود يوولسو تانونو په صورت كې مبيع ځكه مجهول دې. چې مبيع خو صرف لس تانونه دى.او يوولسم پلنډه چونكه مبيع نه دې.په دې وجه ددې واپس كول واجب دى.او تانونه چونكه مختلف دى.معلومه نه ده.چه كوم قسم پلنډه بائع ته واپس كړې شي.اعلى ډول يا ردى او بې كاره قسم.بائع به د اعلى ډول مطالبه كوى.او مشترى به ردى ډول واپس كوى.بهرحال هركله چې يوولسم پلنډه مجهول دې.نو ددې په وجه پاته لس تانونه كوم چې مبيع دى.هغه هم مجهول شو.اود مبيع جهالت چونكه مفسد د بيع وى.په دې وجه په دې صورت كې به هم بيع فاسد وى.

> وَلَوْبَيَّنَ لِكُلِّ ثَوْبٍ ثَمَنًا او كه د تهان ثمن ئې بيان كړل جَازَفِي فَصْلِ النُّقْصَانِ بِقَدْرِهِ نود كم ختلو په صورت كې د موجود په اندازه جائز ده وَلَهُ الْخِيَارُ اود مشترى لپاره اختيار ثابت دې. وَلَمْ يَجُزْفِي الزِّيَادَةِ اود زيات ختلو په صورت كې جائز نه دې لِجَهَالَةِالْعَشَرَةِ الْمَبِيْعَةِ [1] ځكه چې لس تهانونه كوم چې مبيع دي.مجهول دي

**تشريح:**- او كه د هر پلنډه ثمن ئې جلا جلا بيان كړلو.مثلاً د لسو تانونو پنډ ئې واخستلو.چه هر پلنډه د لس درهم په عوض كې دې.نود نهه تانونو په صورت كې ددې د برخې (حصې) د ثمن په عوض كې بيع جائز ده.او مشترى د اخستلو يا د نه اخستلو اختيار شته دې.خود يوولسو تانونو په صورت كې بيع جائز نه ده.د نقصان په صورت كې بيع ځكه جائز ده.چه هركله د هر يو پلنډه ثمن بيان كړې شو.نود غير موجود پلنډه د برخې (حصې) ثمن يعنى لس درهم معلوم دى.او هركله چې ددې ثمن معلوم دى.نود پاته نهه تانونو ثمن، يعنى لس كم سل درهمه هم معلوم دى.نو هركله چې مبيع او ثمن دواړه معلوم دى.نود بيع په جائز كيدلو كې څه اشكال دې.ځكه چې تفريق د صفقه ،،قبل التمام،، شوې دې.په دې وجه مشترى ته د اخستلو يا د نه اخستلو اختيار وركړې شوې دې.اود يوولسو تانونو په صورت كې بيع په دې وجه ناجائز ده.چه يوولسم پلنډه چونكه مجهول دې.ځكه ددې په وجه پاته لس تانونه هم مجهول شو.اود مبيع مجهول كيدل، بيع فاسده وى.په دې وجه د زياتوالى په صورت كې به بيع فاسد دى.

> وَقِيْلَ عِنْدَأَبِي حَنِيْفَةَ لَايَجُوْزُفِي فَصْلِ النُّقْصَانِ أَيْضًا او وئيلې شوى دى.چه د ابوحنيفه رحمه الله په نيز د كم ختلو په صورت كې هم جائز نه دى وَلَيْسَ بِصَحِيْحٍ .حالانكه دا قول صحيح نه دې.

**تشريح:**- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائى.چه بعضو مشائخ فرمائيلى دى.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د نهه تانونو په صورت كې هم بيع فاسد ده.او دليل ئې دا ذكر كړې دې.چه هركله د كپړو پنډ ئې د لسو تانونو په خيال خرڅ كړلو.نو ګويا موجود او معدوم ئې جمع كړلو.او په موجود كې دننه د بيع قبلولو لپاره ئې په معدوم كې د بيع قبلولو شرط لګولې دې. او دا شرط فاسد دې.په دې وجه به په دې صورت كې هم بيع فاسد وى.لكه مثلاً په بيع كې ئې آزاد او غلام جمع كړل.اود هر يو ثمن ئې هم بيان كړلو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په غلام كې هم بيع صحيح نه وى.دا مسئله ئې د جامع صغير په مسئله باندې هم قياس كړې ده.د جامع صغير مسئله داده.كه يو

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا فى الطحطاوى على الدرالمختار(۲۰\۳) وردالمحتار(۳۶\۱٤) نقلاً عن القول الراجح (۶\۱۲)-

كس دوي (دوه) كپړې واخستلې په دې شرط چې دا دواړه هروي دي يعنې ،، منسوب الى هراة،، دي.اود دواړو ئې جلا جلا ثمن هم بيان كړلو.خو كله ئې چې دا اوكتلې.نو يوه كپړه هروي اوختله.او بله مروي او ختله.د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دواړو كپړوكي بيع فاسد ده.اوس چې كوم حضرات مشائخ د نهه تانونو په صورت كې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د بيع د عدم جواز قائل دي.د هغوى مستدل دا هم دې.چه هركله ئې دوې (دوه) كپړې د هروى په شرط لګولو سره واخستلې.او په دې كې يوه مروى اوختله.نو په دې كپړې كې د هروى كيدلو صفت فوت دې.اصل ثوب فوت نه دې.اوپه لسو تانونوكي چې كله نهه تانونه اوختل.نو اصل ثوب هم فوت دې.نو هركله چې په ،،احد البدلين،، كې د صفت فوت كيدل د عقد مفسد دى. نو په دې كې به د اصل ثوب فوت كيدل په درجه اولى سره مفسد د عقد وي.

علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي چه د نهه تانونو ختلو په صورت كې د عدم جواز قول صحيح نه دې.خكه چې كوم پلنډه كم دې.د هغې ثمن چونكه قطعي طور باندې معلوم دې.په دې وجه به د پاته تانونو قيمت هم معلوم وي.او هركله چې ثمن او مبيع دواړه معلوم دي.نو بيع به فاسد نه وي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى ثَوْبَيْنِ په خلاف ددې كه دوې (دوه) تهانونه ئې په دې شرط واخستل عَلَى أَنَّهُمَا هَرَوِيَّانِ.چه دواړه هروى دي فَإِذَا أَحَدُهُمَا مَرْوِيٌّ بيا په دواړوكي يو مروى اوختلو حَيْثُ لَا يَجُوزُ فِيهِمَا نود دواړو بيع جائز نه ده وَإِنْ بَيَّنَ ثَمَنَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا.اګرچه د هر يو ثمن ئې بيان كړي وو. لِأَنَّهُ جَعَلَ الْقَبُولَ فِي الْمَرْوِيِّ شَرْطًا لِجَوَازِ الْعَقْدِ فِي الْهَرَوِيِّ خكه چې بائع د هروى په بيع كې د مروى بيع قبلول شرط ګرځولې دې. وَهُوَ شَرْطٌ فَاسِدٌ اودا شرط فاسد دې وَلَا قَبُولَ يُشْتَرَطُ فِي الْمَعْدُومِ او په معدوم كې د قبول هيڅ شرط نه وي فَافْتَرَقَا نو په دواړو صورتونوكي توپير اوشو

تشريح:- او پاتې شو،د جامع صغير په مسئله باندې قياس، نودا ټيك نه دې.خكه چې هركله دوې (دوه) كپړې د هروى كيدلو په شرط باندې خرڅ كړلې.او په دې كې يوه مروى اوختله.نو ګويا بائع په هروى كپړه كې د بيع قبلولو لپاره په مروى كپړه كې د بيع قبلولوشرط لګولې دې.اودا شرط د ،، مقتضائې عقد،، په خلاف كيدلو په وجه فاسد دې.په دې وجه به په دې صورت كې بيع فاسد وي.اود هروى او مروى دواړو كپړو بيع به ناجائز وي.اود لسو تانونو په خانې د نهه تانونو ختلو په صورت كې يو پلنډه معدوم دې.نو ګويا په موجوده تانونوكي د بيع قبلولو لپاره په معدوم كې د بيع قبلولو شرط لګولې شوې دې.حالانكه په معدوم كې د قبلولو شرط نه وي.نودا داسې شوه.لكه چې هيڅ شرط نه وي لګولې شوې.بلكه په پند كې د تانونو شمير غلط شو. يعنې د لسو په خانې نهه اوختل.په دې تفصيل سره ښكاره شوه.چه د جامع صغير مسئله «اشترى ثوبين على أنهما هرويان» او زموږ په مسئله كې د زمكې او آسمان توپير دې.نو په دې توپير سره قياس ټيك نه دې.

**يوه كپړه دلسو ګزو په شرط هرګز د يو درهم په بدل سره اخستلوكښې د كمې زياتې حكم**

وَلَوِ اشْتَرَى ثَوْبًا وَاحِدًا عَلَى أَنَّهُ عَشَرَةُ أَذْرُعٍ اوكه يو تهان ئې په دې شرط واخستلو.چه دا لس ګزه دې كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ هر ګز د يو درهم په عوض دې فَإِذَا هُوَ عَشَرَةٌ وَنِصْفٌ أَوْ تِسْعَةٌ وَنِصْفٌ بيا دا لس نيم ګزه يا نهه نيم ګزه اوختلو قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ: نو ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلى دى. فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ يَأْخُذُهُ بِعَشَرَةٍ مِنْ غَيْرِ خِيَارٍ چې په ړومبى صورت كې دې دا د اختيار نه بغير د لس درهم په عوض واخلى وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يَأْخُذُهُ بِتِسْعَةٍ إِنْ شَاءَ او په دوهم صورت كې كه غواړى.نو د نهه درهمو په بدله كې دې واخلى

حل اللغة:- ① الاخذ،اخستل② الانتقاص،كميدل،③ تفاوتا،كمې زياتې ④،ضرا،نقصان

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه يو كس يو پلنډه په دې شرط واخستلو.چه دا لس ګزه دې.او هر ګز د يو درهم په عوض كې دې.بيا ئې چې كله دا ناپ كړلو.نودا لس نيم ګزه اوختلو.يا نهنيم ګزه اوختلو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دادې.چه د زياتوالى په صورت كې مشترى دا د لس درهمو په عوض كې واخلى.او مشترى ته به ددې د



اخستلو يا د نه اخستلو اختيار نه وي.يعنې اخستل به ضرورى وي.اود نقصان په صورت كې به ئې د نهه درهمو په عوض كې اخلى.خو په دې صورت كې به مشترى ته د اخستلو يا د نه اخستلو اختيار وي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ ابويوسف رحمه الله فرمائيلى دى فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ يَأْخُذُهُ بِأَحَدَ عَشَرَ إِنْ شَاءَ او چې په ړومبى صورت كې كه غواړى.نود يوولس درهمو په عوض دې واخلى وَفِي الثَّانِي يَأْخُذُهُ بِعَشَرَةٍ إِنْ شَاءَ او په دوهم صورت كې كه غواړى.نود لس درهمو په عوض دې واخلى

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله مذهب دادې.چه د زياتوالى په صورت كې به ئې د يوولسو درهمو په عوض كې اخلى.اود نقصان په صورت كې به ئې د لسو درهمو په عوض كې اخلى.په دواړو صورتونوكي به مشترى ته اختيار وي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ:اوامام محمد رحمه الله فرمائيلى يَأْخُذُ فِي الْأَوَّلِ بِعَشَرَةٍ وَنِصْفٍ إِنْ شَاءَ دى چې په ړومبى صورت كې دې كه غواړى نو د لس نيم په بدله كې دې واخلى وَفِي الثَّانِي بِتِسْعَةٍ وَنِصْفٍ.(1) او په دوهم صورت كې دې د نه نيم (درهمو) په عوض واخلى وَيُخَيَّرُ او ده ته به اختيار وي لِأَنَّ مِنْ ضَرُورَةِ مُقَابَلَةِ الذِّرَاعِ بِالدِّرْهَمِ مُقَابَلَةَ نِصْفِهِ بِنِصْفِهِ.خكه چې يو ذراع د يو درهم سره د مقابله لپاره ضرورى دى.چه د نصف ذراع مقابله د نصف درهم سره وى فَيَجْرِي عَلَيْهِ حُكْمُهُمَا په دې وجه په نيم باندې به هم د مقابلې حكم جارى كيږى

تشريح:- د امام محمد رحمه الله مذهب دادې.چه د زياتوالى په صورت كې به ئې د لس نيم درهمو په عوض اخلى. اود نقصان په صورت كې به ئې د نهنيم درهمو په عوض كې اخلى.او په دواړو صورتونوكې به مشترى ته د اخستلو يا د نه اخستلو اختيار وي.

دليل دادې.چه هركله د يو ګز په مقابله كې يو درهم دې.نود ګز د هر جزء په مقابله كې به د درهم ددې دمثل جزء وى.مثلاً د نصف ګز په مقابله كې به نصف درهم وى.اود ګز څلورمې برخې (حصې) په مقابله كې به د درهم څلورمه برخه وى.اود اتم جزء په مقابله كې به د درهم اتم جزء وى.نو هركله چې د ګز د اجزاؤ باندې د مقابلې حكم جارى كيږى.نود زياتوالى په صورت كې به د لس نيم ګزه په مقابله كې لس نيم درهمه واجب وى.اود نقصان په صورت كې به د نهنيم ګزه په مقابله كې نهنيم درهمه واجب وى.او چونكه د زياتوالى په صورت كې چونكه صفقه تقسم شوې ده.په دې وجه به په دې صورت كې هم مشترى ته اختيار وى.لكه څنګه چې وړاندې تير شوى دى.د صفقه د تفريق په صورت كې مشترى ته د اخستلو يا د نه اخستلو اختيار وى.

وَلِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله.اود ابويوسف رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ لَمَّا أَفْرَدَ كُلَّ ذِرَاعٍ بِبَدَلٍ نَزَلَ كُلُّ ذِرَاعٍ مَنْزِلَةَ ثَوْبٍ عَلَى حِدَةٍ.چه هركله ده دهر ذراع جلا عوض بيان كړو.نوهر ذراع د جلا كپړې په مرتبه كې شو وَقَدِ انْتَقَصَ.او دا لږ كم شو

تشريح:- د حضرت امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه هركله ئې «ذراع بدرهم» اووئيل.اود هرګز په مقابله كې ثمن ذكر شو.نو اوس ،،ذراع،، يعنې ګز وصف پاتې نشو.بلكه اصل شو.او لس ذراعه په منزله د لسو تانونو شو.نود زياتوالى په صورت كې ګويا مشترى يوولس تانونه واخستل.خو يوولسم پلنډه لږشان كم ملاؤ شو.اود نقصان په صورت كې ئې ګويا لس تانونه واخستل.خو لسم پلنډه لږ شان كم ملاؤ شو.اود ذراع په كميدلو سره په ثمن كې كمى نه كيږى.په دې وجه به د پوره ذراع ثمن واجب وى.يعنې په ړومبى صورت كې به يوولس درهمه واجب وى.او په دوهم صورت كې به لس درهمه واجب وى.او مشترى ته به خيار خكه حاصل وى.چه د زياتوالى په صورت كې مشترى ته اګرچه د نيم ګز نفع حاصل شوه.خو په دې نفع كې د يو درهم زياتوالى ضرر هم ملاؤ شوې

(1) القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا فى سكب الأنهر(۲\۱٤) والبحر الرائق (۵\۲۹۳) والدر المختار(٤\۳۶) ورد المحتار(٤\۳۶) نقلا عن القول الراجح (۲\۷)-

دي.نو ددې ضرر نه د بېچ كيدلو لپاره مشتري ته د بيع فسخ كاوه اختيار حاصل دې.اود نقصان په صورت كې چونكه د ،، وصف مرغوب فيه،، په فوت كيدلو سره مشتري ته خيار حاصل وي.مثلاً يو كس يو غلام د ،، طباخ ،،(نان پز) كيدلو په شرط باندې واخستلو.بيا معلومه شوه.چه دې طباخ نه دې.نو مشتري ته به د ترك بيع اختيار حاصل وي.

> وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ الذِّرَاعَ وَصْفٌ فِي الْأَصْلِ .اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه ذراع په اصل كې يو وصف دې وَإِنَّمَا أَخَذَ حُكْمَ الْمِقْدَارِ بِالشَّرْطِ.اوده د مقدار حكم په شرط سره واخستلو وَهُوَ مُقَيَّدٌ بِالذِّرَاعِ.اودا شرط ذراع سره مقيد دې فَعِنْدَ عَدَمِهِ عَادَ الْحُكْمُ إِلَى الْأَصْلِ.نو ددې شرط معدوم كيدلو په وخت حكم اصل ارخ ته واپس شو

تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه وړاندې دا خبره ثابته شوې ده.چه ذراع خو په اصل كې وصف دې.ددې په مقابله كې د ثمن هيڅ برخه نه راځي.خود «لكل ذراع بدرهم» په شرط سره دې د اصل حكم حاصل كړې وو.او شرط مقيد دې د ذراع سره.او نيم ذراع چونكه ذراع نه دې.په دې وجه په نيم ذراع كې شرط معدوم شو.او هركله چې شرط معدوم شو.نو حكم خپل اصل ارخ ته يعنى وصف ارخ ته واپس كيږي.يعنى نيم ذراع به وصف وي.اصل به نه وي.اود وصف په مقابله كې ثمن نه وي.په دې وجه په لس ذراع او نهه ذراع باندې چې كوم نصف ذراع زياتى دې.ددې په مقابله كې به ثمن نه وي.بلكه مشتري به د لس نيم ذراع په صورت كې دا پلنډه د لس درهمو په عوض كې اخلي.اود نهنيم ذراع په صورت كې به دا دنهه درهمو په عوض كې اخلي.اودا داسې ده.لكه مثلا يو كس يو شي دعيب داره كيدلو په شرط سره واخستلو.بيا دا روغ اوختلو.نو ددې وصف د سلامتيا اود روغوالى په مقابله كې هيڅ ثمن نه وي.بلكه دا وصف به د مشتري لپاره مفت وي.

▪ د زياتوالى په صورت كې به مشتري ته اختيار ځكه نه وي.چه په دې صورت كې مشتري ته نيم ذراع زياتي ملاؤ شوي دې.اود ثمن د زياتوالى ضرر نه دې لاحق شوې.اود نقصان په صورت كې چونكه صفقه بدل شوې ده.په دې وجه د نقصان په صورت كې به مشتري ته خيار حاصل وي.

> وَقِيلَ فِي الْكِرْبَاسِ الَّذِي لَا يَتَفَاوَتُ جَوَانِبُهُ ونيلى شوى دى. په هغه كپړه كې چې ددې اطراف متفاوت نه وي. لَا يَطِيبُ لِلْمُشْتَرِي مَا زَادَ عَلَى الْمَشْرُوطِ.او په مشروط باندې زياتوالې مشتري لپاره جائز نه دې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَوْزُونِ.ځكه چې داسې كپړه د موزون په مرتبه كې ده حَيْثُ لَا يَضُرُّهُ الْفَصْلُ چې ددې جداكول مضر نه دى. وَعَلَى هَذَا قَالُوا په دې بناء مشائخو فرمائيلي دي. يَجُوزُ بَيْعُ ذِرَاعٍ مِنْهُ چې په دې كې د يو گز بيع جائز ده.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه ذكر شوى درې واړه اقوال په هغه كپړه كې دى.د كومې كپړې طرفونه چې مختلف وي.خود كومې كپړې طرفونه چې مختلف نه وي.كه هغه څه زياتي اوختله.نو زياتوالى مشتري لپاره حلال نه دې.بلكه دا زياتي به بائع ته واپس كوي.ځكه چې داسې كپړه د كيلي او وزني څيزونو په مرتبه كې ده.چه ددې جداكول هيڅ مضر نه دى.په دې وجه مشائخ ونيلي دي.چه په دې قسم پلنډه كې د يوذراع خرڅول جائز دى.يعنى لكه څنګه چې د غلې په ډيرى كې د يو قفيز بيع جائز ده.دغه ډول دې قسم پلنډه كې هم د يو ذراع خرڅول جائز دى.اگرچه ددې .ځاني متعين نه وي.

## بغير د نوم ذكر كولو نه په بيع كښې داخليدونكي څيزونه

> فَصْلٌ وَمَنْ بَاعَ دَارًا او چاچه يو دار ( كور) خرڅ كړو دَخَلَ بِنَاؤُهَا فِي الْبَيْعِ نوددې عمارت به په بيع كې داخل وي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِ اگرچه دا ئې نه وي بيا كړې لِأَنَّ اسْمَ الدَّارِ يَتَنَاوَلُ الْعَرْصَةَ وَالْبِنَاءَ فِي الْعُرْفِ ځكه چې په عرف كې لفظ د دار(كور) غولې (صحن) او عمارت ته ګډ وى وَلِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا اتِّصَالَ قَرَارٍ اوهم په دې وجه عمارت زمكې سره د برقرار پاتې كيدلو لپاره متصل دې فَيَكُونُ تَبَعًا لَهُ په دې وجه به عمارت ددې ډګر او زمكې تابع وي .

حل اللغة:① دار،كور② ، تناول،شامل كيدل،③عرصة،صحن،④اتصال،يوځائې كيدل



تشريح:- په اردو ژبه كې د ،، دار،، لفظ مطلقاً د كور لپاره ونيلې شي.او هم په دې معنى كې ،،منزل،،او،، بيت،، هم دې.خو په عربي ژبه كې توپير دې.چه ،،دار،، هغه (كور) ته وائي.چه په هغې كې غولې (صحن) وي.وړې وړې كمرې وي.مخې ته برانډه وي.دالانچه (باورچى خانه) وي.اود څاروو باړ( شپول ) وي. او،، منزل،، هغه دې.چه په هغې كې وړې وړې كمرې، دالانچه (باورچى خانه)،او بيت الخلاء( ليټرين) وي.او غولې (صحن) نه وي.او،، بيت ،، هغه مسقف كوټې ته ونيلې شي.چه په هغې كې يوه دروازه وي.( حاشيه هدايه بحواله سقايه)

▪ ددې فصل مسئلو بنا (بنياد ) په دوې (دوه) قاعدو باندې دې.① هر هغه شئ چې هغې ته په عرف كې لفظ د بيع شامله وي.هغه په بيع كې داخليږي.اگرچه په صراحت سره ئې دا بيان كړې نه وي.② هرهغه شئ چې هغه د مبيع سره د برقرار ساتلو لپاره متصل وي.هغه د مبيع تابع وي.او په بيع كې داخل وي.

▪ اوس صورت د مسئلې دادې.چه يو سړي كور خرڅ كړو.نو ددې عمارت به په بيع كې داخل وي.اگرچه عمارت ئې په بيع كې صراحت سره نه وي ذكر كړې.① ځكه چې په عرف كې لفظ د،، دار،، ډګر او عمارت دواړو ته ګډ وي.② دوهم دليل دادې.چه د عمارت اتصال د زمكې سره برقرار او پاته كيدلو لپاره دې.په دې وجه به عمارت د ډګر تابع وي.او په بيع كې به داخل وي.

## د زمكې په بيع كښې ونې داخل دي

> وَمَنْ بَاعَ او كوم كس چې يوه مځكه خرڅه كړله أَرْضًا دَخَلَ مَا فِيهَا مِنَ النَّخْلِ وَالشَّجَرِ نو په دې كې به ددې زمكې د كجورو ونې او نورې ونې داخل وي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِ .اگرچه دائې ذكركړې نه وي لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا لِلْقَرَارِ ځكه چې دا ونې دې زمكې سره د برقرار پاتې كيدلو لپاره متصل دى. فَأَشْبَهَ الْبِنَاءَ نود عمارت مشابه شو وَلَا يَدْخُلُ الزَّرْعُ فِي بَيْعِ الْأَرْضِ اود زمكې په بيع كې به ددې فصل داخل نه وي إِلَّا بِالتَّسْمِيَةِ مګر په صراحت سره ذكر كاوه سره( به په بيع كې داخل وى) لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا لِلْفَصْلِ ځكه چې فصل زمكې سره د جلا كيدلو لپاره متصل دې. فَشَابَهَ الْمَتَاعَ الَّذِي فِيهَا نود هغه سامان مشابه شو.كوم چې په دې كې ايخودې شوې وي.

حل اللغة:- ① نخل،د قجورې ونه② ،زرع،پټي \فصل،متاع،سامان③،البناء،آبادي

تشريح:- مسئله داده.چه يوكس مځكه خرڅه كړله.اوپه دې مځكه كې ونې دى.نودا ونې به د زمكې په بيع كې داخلې وي.ونې كه غټې وي.او كه وړې وي.ميوه دارې وي.او كه ميوه دارې نه وي.په صراحت سره ئې ددې ذكر كړې وي.او كه نه وي كړې.دليل دادې.چه د ونو اتصال زمكې سره د قرار او پاته ساتلو لپاره دې.دجدا كاوه لپاره نه دې.نو ونې د عمارت مشابه شوې.نو لكه څنګه چې د،، دار،، په بيع كې عمارت داخل وى.دغه ډول به د زمكې په بيع كې ونې هم داخل وي.اگرچه د عقد بيع په وخت ئې ددې ذكر نه وي كړې.

د زمكې په بيع كې د فصل حكم او كه په مځكه كښې فصل ولاړ وو.نود زمكې په بيع كې به فصل داخل نه وى.خود عقد بيع په وخت ئې د زمكې سره د فصل ذكر كړې وو.نو فصل به هم داخل وى.دليل دادې.چه فصل زمكې سره متصل وى.د جلا كاوه دپاره.د پاته ساتلو لپاره نه وى.نو فصل د هغه سامان مشابه شو.كوم ئې چې په كور كې ايخولې وى.نو لكه څنګه چې د كور په بيع كې سامان داخل نه وى.دغه ډول د زمكې په بيع كې فصل هم داخل نه وى.

▪ كه دا سوال اوكړې شي.چه حمل، مورسره د جداكيدلو لپاره متصل دې.خو ددې باوجود حمل د مور په بيع كې داخليږي.حالانكه د قاعدې مطابق داخليدل نه دى پكار.ددې خواب دادې.چه د حمل جلا كول، د انسان په قدرت كې نه دى.بلكه دا د الله تعالى كار دې.اود فصل اود سامان جلا كول د سړي په توان كې وى.په دې وجه حمل په فصل اود كور په سامان باندې قياس كول ټيك نه دى.

## د ونو په بيع کښې د ميوو حکم

﴿وَمَنْ بَاعَ نَخْلًا أَوْ شَجَرًا فِيهِ ثَمَرٌ﴾ اوکوم کس چې د کجورو ونه، ياځه ميوه داره ونه چې په دې کې ميوه وی.خرڅه کړله ﴿فَثَمَرَتُهُ لِلْبَائِعِ﴾ نو ددې ميوې به بائع لپاره وی ﴿إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ﴾ مګر داچه مشتری شرط کړی ﴿لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ ﷺ خکه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی ﴿مَنِ اشْتَرَى أَرْضًا فِيهَا نَخْلٌ﴾ چې څا يوه داسې مځکه واخستله.چه په دې کې د کجورې ونه وی ﴿فَالثَّمَرَةُ لِلْبَائِعِ﴾ نو ميوې به د بائع وی ﴿إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ﴾ (١) مګر داچه مشتری ئې شرط کړی ﴿وَلِأَنَّ الِاتِّصَالَ وَإِنْ كَانَ خِلْقَةً﴾ اوخکه چې د ميوو اتصال ونو سره اګرچه مورزاده (پيدائشی) دې ﴿فَهُوَ لِلْقَطْعِ﴾ خودا د شو کاوه لپاره دی ﴿لَا لِلْبَقَاءِ﴾ پاته ساتلو لپاره نه دی ﴿فَصَارَ كَالزَّرْعِ﴾ نودا د فصل پشان شو.

حل اللغة:- ① نخل،د قجورې ونه ② ثمر،ميوه، ③ اشتراء،اخستل، ④ المبتاع،اخستونکې

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يو کس يوه ميوه داره ونه خرڅه کړله.نو ددې ميوې به د بائع لپاره وی.خو که مشتری د ونو سره ميوې هم واخستلې.نو ميوې به هم د مشتری لپاره وی.دليل ① داحديث دې. ﴿من اشترى ارضاً فيها نخل فالثمرة للبائع إلا أن يشترط المبتاع﴾ يعنی که يو کس د ميوه دارو ونو مځکه واخستله.نو ميوې به د بائع لپاره وی.خو که مشتری د ميووحکم هم اولګوی.نو ميوې به د مشتری لپاره وی. ② دوهم دليل د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حديث دې.د حديث الفاظ دادی. ﴿ومن باع عبداً وله مال فماله للبائع إلا أن يشترط المبتاع ومن باع نخلاً مئوبراً فالثمرة للبائع إلا أن يشترط المبتاع﴾ يعنی کوم سړی چې غلام خرڅ کړلو.حالانکه د غلام سره مال دې.نودا مال به د بائع وی.البته که مشتری شرط اولګوی چې دا غلام سره دده د مال نه ما واخستلو.نو بيا به غلام سره د مال نه د مشتری وی اوچا چې د کچه قلم شوې خرما (قجوره) خرڅه کړله.(يعنی چې په زنانه خرما (قجوره) کې د نارينه قجورې ښاخ اولګوی) نو ميوې به د بائع لپاره وی.خودا چې مشتری شرط اولګوی.(نو بيا به ميوې د مشتری لپاره وی) ددې حديث نه هم ثابتيږی.چه د ونې ميوې به د بائع لپاره وی. ③ عقلی دليل دادې.چه د ميوو اتصال د ونې سره اګرچه مورزاده (پيدائشی) دې.خودا د شو کاوه لپاره دی.د پاته ساتلو لپاره نه دې.نود ونې ميوې د فصل مشابه شوې.نو لکه څنګه چې د زمکې فصل د زمکې په بيع کې نه داخليږی.دغه ډول د ونو ميوې هم د ونو په بيع که نه داخليږی.

### بائع مشتری بوخت ساتلې شی اوکه نه؟

﴿وَيُقَالُ لِلْبَائِعِ﴾ او بائع ته به وئيلی شی ﴿اقْطَعْهَا﴾ چې ميوې اوشوکوه ﴿وَسَلِّمِ الْمَبِيعَ﴾ او مبيع مشتری ته اوسپاره ﴿وَكَذَا إِذَا كَانَ فِيهَا زَرْعٌ﴾ اوهم دغه ډول که په مځکه کې فصل وی ﴿لِأَنَّ مِلْكَ الْمُشْتَرِي﴾ بوخت ﴿بِمِلْكِ الْبَائِعِ﴾ خکه چې د بائع ملک سره د مشتری ملك ګيرشوې دې ﴿فَكَانَ عَلَيْهِ تَفْرِيغُهُ وَتَسْلِيمُهُ﴾ نو په بائع باندې واجب دی.چه دا خالی کړی.او مشتری ته ئې اوسپاری ﴿كَمَا إِذَا كَانَ فِيهِ مَتَاعٌ﴾ لکه چې (مثلاً) په کور کې د بائع څه سامان پروت وی

حل اللغة: ① تفريغ،خالی کول ② ،متاع ،سامان، ③ المدة،وخت، ④ القطع ،کټ کيدل

تشريح:- داحنافو رحمهم الله په نيز په که يو کس ميوه داره ونه خرڅه کړله.نو ميوې به د بائع لپاره وی.نو هرکله چې ميوې

(١) غريبه الزيعلي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل حديث عبدالله بن عمر عن أبيه عن النبى ﷺ من باع عبداً وله مال فلماله للبائع إلا أن يشترط المبتاع ومن باع نخلاً مؤبراً فالثمرة للبائع إلا أن يشترط المبتاع أخرجه البخارى فى البيوع باب ٩٠ وأبوداود فى البيوع باب ٤٢ رقم ٣٤٣٣ والترمذى فى البيوع باب ٢٥ رقم ١٢٤٤ والنسائى فى البيوع باب رقم ٤٣٢٢ وابن ماجه فى التجارات باب ٣١ رقم ٢٢١١ واحمد فى المسند (٦/٢ كذا فى نصب الراية (١٠/٤)_



دبائع لپاره دی.او ونه د مشتری ده.نو بائع ته به وئيلې شی.چه ميوې اوشوکوه.او مبيع مشتری ته حواله کړه.دغه ډول ئې که مځکه خرڅه کړله.او په ذمکه کې فصل دې.نو بيا به هم بائع ته وئيلې شی.چه خپل فصل کټ کړه.او مځکه مشتری ته اوسپاره.

دليلنا ◉ دليل دادې.چه په ذکر شوی دوارو صورتونوکې دمشتری ملك (يعنی ونې اومځکه) د بائع د ملك (يعنی ميوو او فصل) سره مشغوله ده.حالانکه په بائع باندې واجب دی.چه دې مبيع فارغ کړی. او مشتری ته ئې حواله کړی.په دې وجه ميوې شوکول،او فصل کټ کول،او ونې او مځکه سپارل واجب دی. اودا داسې ده.لکه چې يوکس کور خرڅ کړلو.او په کور کې د بائع سامان پروت وی.نو په بائع باندې کور خالی کول،او سپارل واجب دی.

﴿وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يُتْرَكُ﴾ او امام شافعی رحمه الله فرمائيلی دی.چه ميوې او فصل دې پريخودلې شی ﴿حَتَّى يَظْهَرَ صَلَاحُ الثَّمَرِ﴾ تردې چې د ميوو ګټور کيدل ښکاره شی ﴿وَيُسْتَحْصَدَ الزَّرْعُ﴾ او فصل د کټ کاوه قابل شی ﴿لِأَنَّ الْوَاجِبَ إِنَّمَا هُوَ التَّسْلِيمُ الْمُعْتَادُ﴾ خکه چې واجب خو په معتاد طريقه باندې سپارل دی ﴿وَالْمُعْتَادُ أَنْ لَا يُقْطَعَ كَذَلِكَ﴾ او په عادت کې دغه ډول نه کټ کيږی ﴿وَصَارَ كَمَا إِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْإِجَارَةِ﴾ او دا د هغه صورت په شان شو چې کله د اجارې موده ختمه شی ﴿وَفِي الْأَرْضِ زَرْعٌ﴾ او په مځکه کې فصل دې ﴿قُلْنَا: هُنَاكَ التَّسْلِيمُ وَاجِبٌ أَيْضًا﴾ موږ وايو.چه د اجاره په صورت کې هم سپارل واجب دی ﴿حَتَّى يُتْرَكَ بِأَجْرٍ﴾ تردې چې مځکه به دده سره په اجرت باندې پريخودلې ش اود عوض (اجرت) سپارل واجب دی ﴿وَتَسْلِيمُ الْعِوَضِ كَتَسْلِيمِ الْمُعَوَّضِ﴾ اود عوض (اجرت) سپارل د معوض زمکې سپارلو پشان دی.

تشريح:- مذهب الشافعی رحمه الله ◉ دامام شافعی رحمه الله مذهب دادې.دغه ډول هم دا قول د امام مالك اود امام احمد رحمه الله هم دی.چه ميوې به په ونه کې پريخودلی شی.تردې پورې چې ددې ګټور کيدل ښکاره شی.او فصل به په پټی کې پريخودلې شی.تردې چې دا د کټ کاوه قابل شی.حاصل داچه د ونو او زمکې فوراً سپارل واجب نه دی.بلکه ميوې به د ګټور کيدلو،او فصل به دکټ کاوه قابل کيدلو پورې پريخولې شی.

دليلهم ◉ ددې حضراتو دليل دادې.چه په بائع باندې د مبيع سپارل بلاشبه واجب دی.خو په داسې طريقه سپارل واجب دی.چه په خلګو کې مشهور وی.اود خلګو عادت دادې.چه دوی داسې قسمه ميوې نه شوکوی.چه د نفع قابل نه وی.او داسې فصل نه کټ کوی.کوم چې د کټ کاوه قابل نه وی.اودا داسې ده. لکه مثلا يوکس مځکه په اجرت باندې واخستله.او په دې کښې ئې فصل اوکرلو.نو هرکله چې د فصل کټ کولوزمانه را نژدې شوه.نود اجارې موده پوره شوه.نود فصل کټ کاوه قابل کيدلو پورې به دا پريخودلې شی.نوهم دغه ډول به دلته کې هم د ميوو ګټور کيدلو پورې، اود فصل کټ کاوه قابل جوړيدلو پورې به ميوې اوفصل پريخودلې شی.

الجواب من القياس ◉ ددې قياس ځواب دادې.چه داجاره په صورت کې هم د اجاره موده پوره کيدلو سره فورا د زمکې سپارل واجب دی.هم دا وجه ده.چه ،، مستاجر،، د اجاره موده ختميدلو نه روسته که فصل په مځکه کې پريښول اوغواړی.نو زياتی اجرت به واجب وی.ګويا مستاجر د زياتی مودې نور اجرت ورکړلو.اود عوض يعنی د اجرت سپارل داسې دی.لکه د معوض، يعنی دزمکې سپارل.او کله چې د اجاره موده ختميدلو سره مځکه ، يعنی ددې زياتی اجرت ئې اوسپارلو.نود اجارې موده پوره کيدلو نه روسته په مځکه کې فصل پريښول لازم نشو.او هرکله چې په مځکه کې فصل پريښول لازم نشو.نو په دې به قياس کول هم ټيك نه وی.

السوال ◉ که څوك سوال اوکړی.چه د بيع په صورت کې هم ميوې په ونوکې ،او فصل په مځکه کې په اجرت سره د پريښولو اجازت ورکول پکار دی.حالانکه داسې نه ده؟

الجواب ◉ ددې ځواب د راروان ،، قال،، لاندې راځی.لږ انتظار اوکړی.

﴿وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ الثَّمَرُ بِحَالٍ لَهُ قِيمَةٌ أَوْ لَمْ يَكُنْ فِي الصَّحِيحِ﴾ اود صحيح قول مطابق هيڅ توپير نشته. ﴿وَيَكُونُ فِي الْحَالَيْنِ لِلْبَائِعِ﴾ او ميوې به په دوارو صورتونوکې د بائع وی ﴿لِأَنَّ بَيْعَهُ يَجُوزُ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ﴾ خکه چې په دوې

(دوه) روايتونوكي د اصح روايت مطابق (جدا) ددې ميوو بيع جائز د عَلٰى مَا تَبَيَّنَ لكه چې موږ به (روسته دا) بيان كړو فَلَا يَدْخُلُ فِي بَيْعِ الشَّجَرِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ نودا ميوې به د ونو په بيع كې بغير د ذكر كاوه نه نه داخليږي.

حل اللغة:- ① الثمر،ميوه،شجر،ونه② بيع ،اخستل،③ الارض،مځكه

تشريح:- په دې عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه ميوې په داسې حال كې وي.چه ددې څه قيمت وي.يا ددې هيڅ قيمت نه وي.په دې طريقه چې بالكل وړې وړې وي.نود صحيح قول مطابق په دواړه صورتونوكې ميوې د بائع لپاره وي.د بعض حضراتو خيال دې.چه ميوې كه دومره قدرې وړې وي.چه ددې په بازار كې هيڅ ماليت اوقيمت نه وي.نودا به د ونو په بيع كې داخلې وي.اود مشترى لپاره به وي.د قول صحيح وجه داده.چه ميوې كه ددې څه قيمت وي.او كه نه وي.په دواړه صورتونوكې ددې جلا خرڅول جائز دى.اود كوموڅيزنو چې جداخرڅول جائز وي.هغه د بل شي په بيع كې نه داخليږي .په دې شرط چې ددې اتصال ،،على سبيل القرار،، نه وي.نو ثابته شوه.چه ميوې د ونو په بيع كې نه داخليږي. خو كه د ميوو ذكر اوكړې شي.(نوبيا به دا هم په بيع كې داخل وي)

## د زمكې په بيع كښې د كرلى شوي تخم حكم

وَأَمَّا إِذَا بِيعَتِ الْأَرْضُ اوكه مځكه خرڅه كړې شوه وَقَدْ بَذَرَ فِيهَا صَاحِبُهَا او حال داچه مالك په دې كې تخم اچولې دې وَلَمْ يَنْبُتْ بَعْدُ اودا تر اوسه پورې نه ذرغون شوې (راختلې) لَمْ يَدْخُلْ فِيهِ نو تخم به د زمكې په بيع كې داخل نه وي لِأَنَّهُ مُودَعٌ فِيهَا كَالْمَتَاعِ ځكه چې تخم د سامان پشان په دې كې ايخودلې شوې دې

حل اللغة:- ① البذر ،تخم،صاحب،مالك،② مودع ،كيخودې شوې ③ ،المتاع ،سامان

تشريح:- صورت د مسئلې دادې چه يوسړى خپله مځكه په داسې حال كې خرڅه كړله.چه ده په دې مځكه كې تخم كرلى دې.خودا تخم تراوسه پورې نه دې راختلې.نودا تخم به د زمكې په بيع كې داخل نه وي. بلكه تخم به د بائع وي.او مځكه به د مشترى وي.دليل دادې.چه تخم په مځكه كې ايخودلې شوې دې. اوايخولې شوې شئ په بيع كې نه داخليږي.لكه مثلاً هغه سامان كوم چې په كور كې ايخودلې شوې دې.د كور په بيع كې داخل نه دې.د فتاوى په بعضو كتابونوكې دى.كه تخم پرسيدلې خراب شوې وى.نودا به د زمكې تابع وى.اود زمكې په بيع كې به داخل وى.اود مشترى لپاره به وى.ځكه چې د خراب شوې غلې بيع جلا جائز نه ده.په دې وجه به دا د زمكې تابع وى.خو كه خراب شوې نه وى.نودا تخم به د زمكې په بيع كې داخل نه وى.اودا به د بائع لپاره وى.

وَلَوْ نَبَتَتْ اوكه تخم راوختلو وَلَمْ تَصِرْ لَهُ قِيمَةٌ او ددې څه قيمت نه دې جوړ شوې فَقَدْ قِيلَ لَا يَدْخُلُ فِيهِ نو وئيلې شوى دى.چه دا تخم به د زمكې په بيع كې داخل نه وى وَقَدْ قِيلَ يَدْخُلُ فِيهِ[1] او وئيلې شوى دى.چه داخليږي وَكَأَنَّ هٰذَا بِنَاءً عَلَى الْاِخْتِلَافِ گويا اختلاف په دې بناء باندې دې فِي جَوَازِ بَيْعِهِ قَبْلَ أَنْ تَنَالَهُ الْمَشَافِرُ وَالْمَنَاجِلُ چې په لورونو او (د خاروو په) شونډو سره د كټ كاوه قابل كيدلو نه وړاندې ددې د بيع په جواز كې اختلاف دې.

حل اللغة:- ① ينال،رسيږي،② ،المشافر،جمع د مشفر ،لور ،③ المناجل،د خاروو شونډې،④ الارض،مځكه

تشريح:- اوكه دا تخم راوختلو او لږې لږې شان غوړگې ئې راوتلې.خو په داسې حالت كې دى.چه په بازار كې ددې هيڅ قيمت نشته نود بعضو حضراتو خيال دې.چه دا به د زمكې په بيع كې داخل نه وى.او دبعضو رائې داده.چه داخل به وى.د رومبى قول په بنا (بنياد) باندې به دا واخه (غوړگې) د بائع لپاره وى.اود دوهم قول په بناء به د مشترى لپاره وى.

[1]) القول الراجح هو قول دخول النبات فى البيع كذا فى ردالمحتار(٤١\٤) والطحطاوى على الدرالمختار(٢٢\٣) والهنديه (٣٤\٣) محنة الخالق (٢٩٨\٥) نقلاً عن القول الراجح (٨\٢)-



علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دا اختلاف په يو بل اختلاف باندې مبنى دې. هغه دادې.چه داسې گيا چې دا خو نه په لورونو باندې كټ كولې شى.او نه ئې خاروى پخپلو خولو سره كټ كولې شى.او څرن كولې شى.يعنى غوړگې ئې اوس ايله د زمكې نه بهر راوتلى دى.نود داسې گيا جلا خرڅول جائز دى.او كه ناجائز دى؟ بعض حضرات دې ته جائز وائى.او بعض ناجائز وائى.نو كومو حضراتو چې ددې جلا خرڅولو ته جائز وئيلى دى.ددوى په نيز به دا گيا د زمكې تابع نه وى.او د زمكې په بيع كې به داخل نه وى.بلكه دا واخه به د بائع وى.او مځكه به د مشترى وى.او كومو حضراتو چې ددې جلا بيع ته ناجائز وئيلى دى.ددوى په نيز دا غوړگې په بيع كې داخل دى.او مځكه او غوړگې دواړه به د مشترى لپاره وى.

وَلَا يَدْخُلُ الزَّرْعُ وَالثَّمَرُ بِذِكْرِ الْحُقُوقِ وَالْمَرَافِقِ اود حقوق او مرافق ذكر كاوه سره به فصل او ميوې نه داخليږي لِأَنَّهُمَا لَيْسَا مِنْهُمَا ځكه چې دا دواړه د حقوق او مرافق څخې نه دى. وَلَوْ قَالَ او كه بائع اووئيل بِكُلِّ قَلِيلٍ وَكَثِيرٍ هُوَ لَهُ فِيهَا وَمِنْهَا مِنْ حُقُوقِهَا چې په هرقليل او كثير سره كوم چې په دې مبيع كې أَوْ قَالَ مِنْ مَرَافِقِهَا يا ددې مبيع سره چې ددې د حقوق يا مرافق څخې وى لَمْ يَدْخُلَا فِيهِ نو بيا به هم فصل او ميوې داخل نه وى لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

حل اللغة:- ① الزرع،فصل،② الثمر،ميوه ،③ مرافق،فوائد ،④ قليل،كم

تشريح:- زده كړه دا خبره چې د فصل لگيدلې مځكه اود ميوو لگيدلې شوې ونو په بيع كې څلور قسمه الفاظ وئيلې شى.

① مالك اووئيل. ﴿بعت الارض﴾ يا ﴿بعت الشجرة﴾ يعنى مامځكه خرڅه كړله. يا ما ونه خرڅه كړله.ددې نه ئې زياتى هيڅ اونه وئيل.ددې حكم دا دې چې د زمكې په بيع كې فصل اود ونې په بيع كې به ميوې داخل نه وى.لكه څنگه چې وړاندې تير شوى دى

② مالك اووئيل. ﴿بعت بحقوقها ومرافقها﴾ يعنى ما مځكه يا ونه ددې دحقوقو اود مرافقو(منافعو) سره خرڅه كړله.

③ده اووئيل. ﴿بعت بكل قليل و كثير هوله فيها ومنها من حقوقها او من مرافقها﴾ يعنى ما هر قليل او كثير سره كوم چې په دې مبيع كې يا ددې مبيع نه ددې حقوقو يا مرافقو(منافعو) څخې وى.خرڅ مې كړل.

په دې دواړو يعنى دوهم او دريم صورت كې د زمكې په بيع كې د فصل اود ونو په بيع كې ميوې نه داخليږي. ځكه چې په دې دواړو صورتونوكې دحقوق يا مرافق لفظ ذكر دې.او فصل او ميوې نه د حقوقو څخې دى.اود مرافقو څخې دى.ځكه چې حقوق د مبيع هغه توابع ته وئيلې شى.كوم چې د مبيع لپاره ضرورى وى. اود مبيع په وجه سره مقصود وى.لكه د اوبه خور اوبه، او لاره يعنى نالئ؛ يا لختې او مرافق هغه توابع دى.چه كوم منتفع به دى.او د مبيع سره مختص وى.لكه د اوداسه خانې( سبيل ) دالانچه (باورچى خانه)،اود اوبو وتلو لاره د كور د مرافقو څخې دى.نو چونكه فصل د زمكې د حقوقو او مرافقو څخې نه دې.او ميوې د ونې د حقوقو اود مرافقوڅخې نه دى.په دې وجه لفظ د حقوق يا لفظ د مرافق په ذكر كاوه سره د زمكې په بيع كې فصل،او د ونې په بيع كې ميوې نه داخليږي.بلكه دا دواړه به د بائع لپاره وى.

وَإِنْ لَمْ يَقُلْ مِنْ حُقُوقِهَا أَوْ مِنْ مَرَافِقِهَا او كه ددې حقوق يا ددې مرافق ئې اونه وئيل. دَخَلَا فِيهِ نو فصل او ميوې به په بيع كې داخل وى وَأَمَّا الثَّمَرُ الْمَجْذُوذُ وَالزَّرْعُ الْمَحْصُودُ پاتې شوې شوكيدلې ميوې،او كټ شوې فصل، فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمَتَاعِ ځكه چې دا په منزله د سامان دې لَا يَدْخُلُ إِلَّا بِالتَّصْرِيحِ بِهِ نو دا نه داخليږي.خو ددې په صراحت كاوه سره( داخليږي).

حل اللغة:- ① المجذوذ،شوكيدلې ميوه② ،المحصود،ريبلې شوې فصل،③ المتاع،سامان ④ التصريح، ښكاره

تشريح:- په دې كې د څلور صورت ذكر دې يعنى دې ئې اووئيل چې ما هرقليل او كثير سره كوم چې په دې مبيع كې دى.خرڅ كړل. او ﴿من حقوقها﴾ يا ﴿من مرافقها﴾ ئې او نه وئيل.نوپه دې صورت كې فصل او ميوې دواړه به

په بیع کي داخل وي.ځکه چي کله بائع «بعت بكل قليل و كثير هو له فيها» اووئیل.نود لفظ د عموم په وجه به فصل د زمکي په بیع کي او میوې د ونې په بیع کي داخل وي.خودا به هغه وخت وي.چه کله فصل په مځکه کي ولاړ وي. او میوې په ونه کي لګیدلي وي.که میوې شوکیدلې وي.او فصل کټ شوې وي.نود «بكل قليل و كثير» ونیلو باوجود به هم فصل او میوې په بیع کي داخل نه وي.ځکه چي دې وخت دا د ایخودلی شوی سامان پشان دې.او ایخودلي شوې سامان د بل تابع نه جوړیږي.او په بیع کي نه داخلیږي.دغه ډول کټ شوې فصل او شوکیدلې میوې هم د زمکې اود ونې په بیع کي نه داخلیږي.خو که په صراحت سره ئې ذکر کړې وي.نو کټ شوې فصل او شکیدلې میوې به هم د زمکې اود ونې په بیع کي داخل وي.او دواړه به د مشتری لپاره وي.

## د بدوصلاح نه وړاندې او روسته د میوو د بیع حکم

قَالَ وَمَنْ بَاعَ ثَمَرَةً قدوری رحمه الله فرماني.چاچه داسي میوې خرڅې کړلې لَمْ يَبْدُ صَلَاحُهَا چي ددې صلاح ښکاره شوې نه ده. أَوْقَدْ بَدَا یا ښکاره شوې ده جَازَ الْبَيْعُ.نو بیع جائز ده لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ ځکه چي دا مال متقوم دې إِمَّا لِكَوْنِهِ مُنْتَفَعًا بِهِ فِي الْحَالِ یا خو په دې وجه چي دا فی الحال قابل د انتفاع دې. أَوْفِي الثَّانِي یا به په راروانه زمانه کي قابل انتفاع وي وَقَدْ قِيلَ لَا يَجُوزُ قَبْلَ أَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهَا او وئیلی شوی دی.چه د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې ددې بیع جائز نه ده وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او رومبي قول اصح دې.

**حل اللغة:-** ① یبدء،ښکاره کیږي، ② صلاح،پوخوالي، ③ القطع،ګټ کیدل، ④ تفریغ،خالی کول

**تشریح:-** ①په وونو کي د میوو ښکاره کیدو نه وړاندې د هغې خرڅول په اتفاق سره ناجائزدی ② اوچه په وونو کي میوې وی اود هغې صلاح ښکاره شی نو په اتفاق سره ئې خرڅول جائز دی.اوکه صلاح ئې نه وی ښکاره شوې نو بیا هم د احنافو په نیز د هغې خرڅول جائز دی بیا داحنافو رحمهم الله په نیز صلاح ښکاره کیدل دادی.چه میوې د طوفان (سیلۍ) وغیره آفت نه،اود ګلۍ وغیره د فساد نه محفوظ شي.

**دلیلنا**⊛میوې مال متقوم دې.ځکه که صلاح ښکاره شو.نو ددې نه فورا فائده اخستلې شي.او که صلاح ښکاره نشو.نو په راروان وخت کي به دا ګټور کیږي.او کوم شی چي د فائده اخستلو قابل وي.هغه متقوم وي.په دې وجه میوې د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې هم متقوم دی.اود صلاح ښکاره کیدلو نه روسته هم متقوم دی.اود مال متقوم بیع جائز ده.په دې وجه په ذکر شوی دواړو صورتونو کي به د میوو بیع جائز وي.

**المذهب الثانی**⊛په ذکر شوې مسئله کي د صلاح ښکاره کیدو نه وړاندې د امام مالك، امام شافعی،اود امام احمد رحمهم الله په نیز د هغې خرڅول ناجائز دی.

**دلیلهم**⊛رسول الله ﷺ د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د میوو د بیع خرڅولو نه منع فرمائیلې ده.② دوهم دلیل دادې.چه بیع د مال متقوم سره مخصوص دې.اود صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې میوې متقوم نه وي.په دې وجه صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د میوو خرڅول ناجائز دی

**الجواب من دلیل الخصم**⊛ د امام شافعی رحمه الله وغیره د اړخه د پیش شوی حدیث ځواب دادې.چه نبی کریم ﷺ د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د میوو د بیع نه په هغه صورت کي منع فرمائیلې ده.چه کله د میوو په ونه باندې د پریښولو شرط اولګولې شی.او په ونه باندې د پریښولو په شرط سره بیع ناجائز ده.لکه چي په راروانه مسئله کي به راشي.یا مراد دادې.چه نبی کریم ﷺ د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د بیع سلم کاوه نه منع فرمائیلې ده.او قرینه داده.

چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. «أرأيت لو أذهب الله الثمرة لم يستحل أحدكم مال أخيه» یعنی ستاځه خیال دې.که الله تعالی میوې ضائع کړي.نو ته د خپل رور مال په څه وجه حلال ګڼرې.اودا خبره د بیع سلم په صورت کي کیدلې شی.ځکه چي په بیع سلم کي مسلم فیه، یعنی د مبیع سپارل فوراً نه کیږي.بلکه روسته کیږي.بهرحال ددې نه



معلومه شوه.چه د الله رسول ﷺ د میوو صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د سلم کاوه نه منع فرمائیلې ده.ددې ځواب نه روسته دا حدیث د امام شافعی رحمه الله وغیره مستدل نه جوړیږي.

وَعَلَى الْمُشْتَرِي قَطْعُهَا فِي الْحَالِ تَفْرِيغًا لِمِلْكِ الْبَائِعِ او د بائع ملك فارغولو لپاره مشتري باندې فی الحال ددې میوو شوکول واجب دی وَهٰذَا إِذَا اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا او جواز هغه وخت دې. چي دا میوې ئې مطلقاً أَوْبِشَرْطِ الْقَطْعِ یا د شوکاوه په شرط باندې اخستې وي.

**تشریح:-** صاحب دقدوری رحمه الله فرماني.چه زموږ په نیز چونکه د میوو بیع د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې هم جائز ده.اود صلاح ښکاره کیدلو نه روسته هم.په دې وجه به په مشتري باندې فورا د میوو شوکول واجب وي.چه د خپل ملك نه د بائع ملك، یعنی ونې فارغ کړي.صاحب دهدایه رحمه الله فرماني.چه په ونو باندې د میوو بیع جواز هغه وخت دې.چه کله میوې د څه شرط نه بغیر واخلي.یعنی نه ئې د میوو شوکاوه شرط لګولې وي.او نه ئې د پریښولو شرط لګولې وي.یا ئې د شوکاوه په شرط سره اخستې وي.

## دکچه میوو په ونو کښې د پخیدلو په شرط باندې د اخستلو حکم

وَإِنْ شَرَطَ تَرْكَهَا عَلَى النَّخِيلِ او که مشتری دا شرط کړې وي.چه دا په ونو باندې پریږدی فَسَدَ الْبَيْعُ او بیع فاسد ده لِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ ځکه دا شرط داسې دې.چه عقد ددې تقاضا نه کوی وَهُوَشُغْلُ مِلْكِ الْغَيْرِ اودا د بل ملك بوخت ساتل دی أَوْهُوَصَفْقَةٌ فِي صَفْقَةٍ یا په یوه صفقه کي دویمه صفقه کول دی وَهُوَإِعَارَةٌ أَوْإِجَارَةٌ فِي بَيْعٍ اودا په بیع راسته اعاره ده.یا اجاره ده وَكَذَا بَيْعُ الزَّرْعِ بِشَرْطِ التَّرْكِ اوهم دغه ډول د فصل بیع په مځکه کي د پریښولو په شرط سره لِمَا قُلْنَا په هغه وجه چي موږ بیان کړله.

**حل اللغة:-** ① نخیل،د قجورې ونه، ② یقتضی،تقاضا کوی، ③ شغل، بوخت کیدل، ④ صفقة،معامله

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یو کس اووئیل.چه ما ددې ونې میوې په دې شرط باندې واخستلې.چه ددې د پخیدلو پورې به دا په ونه باندې پریږدمه.نودا بیع فاسد ده.

**دلیلاه**⊛ ① دلیل دادې.چه دا شرط د عقد مقتضی نه خلاف دې.ځکه چي د عقد تقاضا داده.چه معقود علیه مشتری ته اوسپارلې شی.او مشتری د بائع د ملك نه معقود علیه جلا کړي.او په دې شرط سره داسې نه ده.بکله مشتری خپل ملك یعنی میوو سره د بائع ملك یعنی ونې بوخت کړې دی.نود عقد د مقتضاء په خلاف شرط لګولو په وجه بیع فاسد ده.② دوهم دلیل دا دې.چي میوې په ونه باندې د پریښولو شرط لګولو په صورت کي یوه صفقه د بل په صفقه کي یدل لازمیږي.ځکه چي ونه باندې د میوو پریښولو اجرت مقرر کړې دې.نو په بیع کي به اجاره داخله وي.او که بغیر د عوضه وي.یعنی مشتری هیڅ عوض مقرر کړې نه وي.نو په بیع کي به اعاره (عاریة ورکول) داخل وي.حالانکه ،، صفقة فی صفقة،، نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده.په دې وجه به دې شرط سره بیع فاسد وي.دغه ډول به په دې صورت کي هم بیع فاسد وي.چه ځوك ولاړ فصل واخلی.اود پخیدلو د وخته پورې د فصل په مځکه کي د پریښولو شرط اولګوی.دلیل وړاندې تیرشوې دې.چه دا شرط د عقد د مقتضاء خلاف دې.او ،،صفقة فی صفقة،، هم لازمیږي.

⁉ دلته کي یو سوال دې.هغه داچه علامه مرغینانی رحمه الله وائی.چه په ونه باندې په عوض یا بغیر د عوضه د میوو پریښولو شرط لګولو په صورت کي صفقة فی صفقة لازمیږي.حالانکه دا غلطه دی.ځکه چي د ونو نه په اجاره باندې ورکول جائز دی.او نه عاریة ورکول جائز دی.نو کله چي د ونو په اجاره او اعاره باندې ورکول ناجائز دی.نودا به د سره صفقه هم نه وي.او هرکله چي دا صفقه نشوه.نو ،،صفقة فی صفقة،، به د کوم ځائې نه لازم شي.البته د ذراعت په صورت کي به صفقة فی صفقة لازمیږي.ځکه چي د زمکې اجاره او اعاره دواړه جائز دی.اوس حاصل داشو.چه د میوو په ونه باندې د پریښولو شرط سره د بیع فساد ځکه دې.چه دا شرط د عقد د

مقتضاء خلاف دي.اود فصل په مخکه باندې د پرېښولو په شرط سره په دوې (دوه) وجهو سره بيع فاسد ده.يود مقتضائي عقد په خلاف كيدلو په وجه،او دوهم د صفقة فى صفقة په وجه.

وَكَذَا إِذَا تَنَاهَى عِظَمُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ او هم دغه دول د ابوحنيفه اوابويوسف ﷺ په نيز هغه وخت چې ددې غټوالې پوره شوى وى. لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چې مونږ بيان كړو وَاسْتَحْسَنَهُ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ لِلْعَادَةِ[1] او امام محمد ﷺ د عادت په وجه دا استحساناً جائز ګنړلې دې بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَتَنَاهَ عِظَمُهَا په خلاف د هغه صورت چې د ميوو غټوالې پوره شوې نه وى لِأَنَّهُ شَرَطَ فِيهِ الْجُزْءَ الْمَعْدُومَ ځكه چې په دې كې د معدوم جزء شرط دې وَهُوَ الَّذِي يَزِيدُ لِمَعْنًى مِنَ الْأَرْضِ أَوِ الشَّجَرِ اودا هغه دې.كوم چې د زمكې يا د ونو په قوت سره زياتيږى.

**حل اللغة:-** ① تناهى،پوره شى،② عظم،غټوالې،③ ارض،مځكه ④ ،شجر،ونه

**تشريح:-** صاحب دهدايه فرمائى.كه د ميوو غټيدل پوره شو.يعنى دا چې څومره قدرې غټيدلې.او پيړيدلې .هغه اوشو.اوس ددې په پيړوالى كې هيڅ زياتوالې متوقع نه دې.نو په داسې صورت كې كه ميوې په دې شرط سره واخلى.چه د پخيدلو پورې به په ونه باندې پرېخودلې شى.نود شيخينو ﷺ په نيز په دې صورت كې هم بيع فاسد ده.دليل دادې.چه دا شرط د عقد د مقتضاء خلاف دې.اود عقد د مقتضاء په خلاف شرط لګولو سره بيع فاسديږى.په دې وجه به په دې صورت كې بيع فاسد وى.او امام محمد ﷺ فرمائيلى دى.چه د خلګو د تعامل (عادت) په وجه استحساناً په دې صورت كې بيع جائز ده.هم په دې فتوى ده.خو كه د ميوو غټيدل پوره نشو.بلكه ددې په پيړوالى كې زياتوالې متوقع وى.نود شرط په پرېښولو سره بالاتفاق بيع جائز نه ده.ځكه چې په دې صورت كې د معدوم جزء شرط دې.اودا هغه جزء دې.كوم چې د زمكې يا د ونې په قوت سره پيدا كيږى.اودا جزء د عقد بيع نه روسته د بائع د ملك نه پيدا شوې دې.نو ګويا مشترى موجود او معدوم يوځائې اخستې دى.او معدوم او موجود ملاوول،او اخستلو سره بيع فاسديږى.په دې وجه به په دې صورت كې بيع فاسد وى.

## د ميوو اخستلو نه روسته په ونو كښې پرېښولو سره د زياتوالې حكم

وَلَوِ اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا او كه ده ميوې مطلقاً واخستلې وَتَرَكَهَا بِإِذْنِ الْبَائِعِ اود بائع په اجازت سره ئې دا (په ونوكې) پرېخودلې طَابَ لَهُ الْفَضْلُ نو په ميووكې چې كوم زياتوالې كيږى.دا به د مشترى لپاره حلال وى.

**حل اللغة:-** ① الاذن،اجازت،② طاب،حلال،③ الفضل،زيادت،④ الترك،پرېخودل

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.كه د پخيدلو پيل كيدلو نه وړاندې ئې ميوې واخستلې.او په ونو باندې ئې د پرېښولو شرط اونكړو.خو ددې باوجود ئې په ونو باندې پرېخودلې.نوكه د بائع په اجازت سره ئې پرېښودې نوپه دې صورت كې چې كوم زياتوالې په دې موده كې په دې ميوو كې شوې دې.دا به د مشترى لپاره حلال وى.

وَإِنْ تَرَكَهَا بِغَيْرِ إِذْنِهِ او كه د بائع د اجازت نه بغير ئې پرېخودلې تَصَدَّقَ بِمَا زَادَ فِي ذَاتِهِ نود ميوو په ذات كې چې كومه اضافه شوې وى،هغه دې صدقه كړى لِحُصُولِهِ بِجِهَةٍ مَحْظُورَةٍ ځكه چې دا زياتوالې په ممنوع طريقه حاصل شوې دې.

**حل اللغة:-** ① تصدق،صدقه دې كړى،② حصول،حاصليدل،③ الجهة،طريقه،④ محظورة،ناجائزه

**تشريح:-** او كه د بائع د اجازت نه بغير ئې پرېښودې وې نو په دې صورت كې به ددې زياتوالى صدقه كوى.ددې صورت دادې.چه د ميوو د پوخوالى پيل كيدلو نه د وړاندې قيمت اندازه به اولګوى.او بيا به د ميوو پخيدلو پيل پوخوالى پيل كيدو نه روسته د قيمت اندازه اولګوى.چه د ميوو د پوخوالى پيل كيدو نه وړاندې ئې زر روپۍ قيمت وو.اود پوخوالى پيل كيدو نه روسته ئې پنځلس سوه روپۍ قيمت شو.نودا پنځه سوه روپۍ كوم چې د عقدبيع نه روسته د

[1]) القول الراجح هو هذا قول محمد ﷺ كذا فى فتح القدير(٤٨٩\٥) نقلاً عن القول الراجح (٩\٢)-



ميوو په ونو باندې د بائع د اجازت نه بغير د پرېښولو په وجه زياتې شوې دى.ددې صدقه كول واجب دى.ددې دليل دادې.چه ددې زياتوالى حصول په حرام طريقه شوې دې.په دې طريقه چې د مالك د اجازت نه بغير ئې دده د زمكې او ونو نه فائده اخستې ده.د غصب شوې زمكې اود غصب شوو ونو نه ئې نفع اخستې ده.

وَإِنْ تَرَكَهَا بَعْدَ مَا تَنَاهَى عِظَمُهَا او كه ددې د غټوالى پوره كيدلو نه روسته ئې دا (د اجازت نه بغير) پرېښودې وى لَمْ يَتَصَدَّقْ بِشَيْءٍ نو هيڅ دې نه صدقه كوى لِأَنَّ هَذَا تَغَيُّرُ حَالَةٍ لَا تَحَقُّقُ زِيَادَةٍ ځكه چې دا د حالت تغير دې.په ذات كې دننه زياتوالې نه دې.

**حل اللغة:-** ① تغير،بدليدل،② تحقق،ثابتيدل،③ زيادة،زياتوالې،④ عظم،غټوالې

**تشريح:-** اوكه د پوخوالى پيل كيدو نه روسته ئې د بائع د اجازت نه بغير ميوې په ونو باندې پرېښودې وى.نود هيڅ شي صدقه كول واجب نه دى.ځكه چې د پوخوالى پيل كيدو نه روسته د ميوو په پيړ والى كې او ددې په ذات كې هيڅ زياتوالې نه دې شوې.بلكه صرف د ميوو په حالت كې توپير پيدا شوې ده.ځكه چې د پوخوالى پيل كيدو نه روسته په ميووكې درې خبرې پيدا كيږى.① د ميوو پخيدل،② رنګ ③ ذائقه (خوند) ددې درې وارو څيزونو حصول نه د زمكې نه كيږى.او نه د ونې نه كيږى.بلكه د ميوو پخول د لمر كار دې.او په دې كې رنګ اچول د سپوږمۍ عمل دې.او ذائقه (خوند) اچول د ستورو احسان دې.نو معلومه شوه.چه د پوخوالى پيل كيدو نه روسته په ميوو كې د بائع د ملك نه هيڅ شى نه حاصليږى.بلكه چې څه هم كيږى.دا د لمر اوستورو عمل دې.نو هركله چې د پوخوالى پيل كيدو نه روسته د بائع د ملك نه څه شى حاصل نكړې شو.نود څه شى صدقه كول به هم واجب نه وى.

## د ميوو اخستلو نه روسته ونې په اجاره باندې اخستل

وَإِنِ اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا او كه مشترى دا ميوې مطلقاً واخستلې عَلَى النَّخِيلِ اودا ئې په ونه كې پرېخودلې وَقَدِ اسْتَأْجَرَ النَّخِيلَ إِلَى وَقْتِ الْإِدْرَاكِ په داسې حال كې چې ونې ئې د ميوو پخيدلو پورې په اجاره باندې واخستلې طَابَ لَهُ الْفَضْلُ .نو زياتوالې به د مشترى لپاره حلال وى.

**حل اللغة:-** ① النخيل،د قجورې ونه② ،الادراك،پوخوالې③ ،طاب،جائزده④ ،الفضل،زياتى

**تشريح:-** دفاسداوباطل په مينځ كې توپير دادې.چه فاسد په اصل كې موجود وى.خو وصفاً معدوم وى. او باطل د معدوم نوم دې.ددې لپاره نه په اصل كې تحقق كيږى.او نه وصفاً تحقق كيږى.

**صورة المسئلة**◉كه يوكس دميوو د پوخوالى پيل كيدو نه وړاندې په ونه كې لګيدلې ميوې واخستلې .اوددې د شوكولويا پرېښولو ئې هيڅ شرط اونكړو.خودا ونې ئې د ميوو پخيدلو پورې په اجاره باندې واخستلې.او ميوې ئې په دې كې پرېخودلې.نو په دې موده كې چې په ميووكې كومه اضافه زياتوالې كيږى.دا د مشترى لپاره حلال دې.

لِأَنَّ الْإِجَارَةَ بَاطِلَةٌ لِعَدَمِ التَّعَارُفِ وَالْحَاجَةِ ځكه چې د رواج او اړتيا نه كيدلو په وجه اجاره باطل ده فَبَقِيَ الْإِذْنُ مُعْتَبَرًا نو صرف د بائع اجازت معتبر دې.

**حل اللغة:** ① التعارف،رواج،② الحاجة،ضرورت،③ بقي،پاته شو،④ معتبر،قابل اعتبار

**تشريح:-** دليل دادې.چه د ونو اجاره باطله ده.ځكه چې د ونو په اجاره باندې اخستل نو خو رواج دې.اونه څه اړتيا دې. اړتيا ځكه نه دې.چه مشترى ميوې ددې د ونوسره اخستلې شى.نو هركله چې د ونو اخستل ممكن دى.نو په اجاره باندې د اخستلو هيڅ اړتيا نشته.بهرحال چې اجاره باطل شوه.نود بائع اجازت پاته شو.اوچونكه د بائع په اجازت سره كه ميوې په ونو باندې پرېخودلې شى.نود ميوو په پيړوالى او ذات كې چې كوم زياتوالې اوشى.دا د مشترى لپاره حلال دې.په دې وجه به دلته كې هم زياتوالې د مشترى لپاره حلال وى.

**السوال**◉كه څوك دا سوال اوكړى.چه د بائع دا ړخه اجازت د اجاره په ضمن كې ثابتيږى.او اجاره باطله ده.او باطل

چي کوم شئ ته متضمن وي.هغه هم باطل وي.نو اجازت هم باطل شو.او هرکله چي د بائع اجازت باطل دي نود
ميوو په ونو کي پريښول د اجازت نه بغير شو.او بلااجازت د پريښولو په صورت کي زياتوالي د مشتري لپاره
حلال نه دي. بلکه دددي صدقه کول واجب وي.په دي وجه دي صورت کي زياتوالي د مشتري لپاره حلاليدل نه دي
پکار.حالانکه تاسو حلال ونيلی دی.

**الجواب®** ددي خواب دادي چه دلته کي اجاره باطل ده.او باطل معدوم وي.او معدوم هيڅ شئ ته د متضمن کيدلو
صلاحيت نه لري.نو اجاره باطله د بائع اجازت ته متضمن نه وي.بلکه د بائع اجازت به مقصود واقع کيږي.او
هرکله چي د بائع اجازت موجود شو.نود مشتري لپاره به زياتوالي حلال وي.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى الزَّرْعَ** به خلاف ددي چي کله ئي فصل واخستلو **وَاسْتَأْجَرَ الْأَرْضَ إِلَى أَنْ يُدْرِكَ** اود فصل پخيدلو پورې
ئي مځکه په اجاره باندي واخستله **وَتَرَكَهُ حَيْثُ لَا يَطِيبُ لَهُ الْفَضْلُ** او فصل ئي په مځکه کي پريښولو .نو زياتوالي به
د مشتري لپاره حلال نه وي.

**تشريح:-** خوکه يوکس د فصل پخيدلو پورې مځکه په اجاره باندي واخستله.او فصل ئي پريښولو .نو په دي فصل
کي چي په دي موده کي کوم زياتوالي اوشي.دا به د مشتري لپاره حلال نه وي.

**لِأَنَّ الْإِجَارَةَ فَاسِدَةٌ لِلْجَهَالَةِ** دليل دا دي چي د جهالت په وجه اجاره فاسد ده **فَأَوْرَثَتْ خُبْثًا** نو (په دي کي) نجاست پيدا
شو.

**حل اللغة:-** ① اورثت،پيدا کړل، ② خبث،ناپاکي، ③ اشترا،واخستله، ④ ثمر،ميوه

**تشريح:-** دليل دا دي چي د زمکي دا اجاره فاسد ده.او فاسد ځکه ده.چه د اجاره موده مجهول ده.ځکه که دهوب
تيز راوختلو.نو فصل به زر پوخ شي.او که يخ وي.نو په ډير وخت کي به پخيږي.او چونکه اجاره فاسده په اصل کي
موجود ده.او موجود شئ دوهم شئ ته د متضمن کيدلو صلاحيت لري.په دي وجه به اجاره فاسده د بائع اجازت ته
متضمن وي.او فاسد چي څه ته متضمن وي.هغه پخپله فاسد وي.په دي وجه به اجازت هم فاسد وي.او هرکله چي
اجاره فاسد ده.اود بائع اجازت هم فاسد دي.نو په فصل کي چي څه هم اضافه کيږي.په دي کي به نجاست او خبث
پيدا کيږي.او په کوم شئ کي چي خبث پيدا شي.هغه حلال نه وي.په دي وجه به دا زياتوالي د مشتري لپاره حلال
نه وي.

## د ميوو اخستلو نه روسته د نورو ميوو پيدا کيدلو حکم

**وَلَوِ اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا** اوکه ده ميوې مطلقاً واخستلي **فَأَثْمَرَتْ ثَمَرًا آخَرَ قَبْلَ الْقَبْضِ** .بيا د قبضه نه وړاندي نورې ميوې پيدا
شوي **فَسَدَ الْبَيْعُ** نو بيع فاسد شوه.

**تشريح:-** صورت د مسئلي دادي.چه يوکس په ونه کي لګيدلي ميوې واخستلي.او ددي د شو کاوه يا پريخودلو ئي
هيڅ شرط اونه لګولو.بلکه دا ئي هم داسي پريخودلي.نو په دي زمانه کي څه نورې ميوې هم په دي ونو کي پيدا
شوې.نو که دا نوې ميوې د مشتري د قبضه کاوه نه وړاندي پيدا شوي.نو بيع به فاسد وي.

**لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ تَسْلِيمُ الْمَبِيعِ** ځکه چي د بائع لپاره مبيع سپارل ممکن نه دي **لِتَعَذُّرِ التَّمْيِيزِ**.ځکه چي ( د مبيع او غيرمبيع په
منځ کي) امتياز( فرق) کول محال دي.

**حل اللغة:-** ① يمکن،ممکن ده، ② تسليم،سپارل، ③ التعذر،نه کيدل، ④ التميز،شناخت

**تشريح:-** دليل دا دي چي کومې ميوې مبيع دي.او کومې ميوې چي نوې پيدا شوې. په دي کښي توپير کول محال (
ناممکن ) دي.په دي وجه د بائع لپاره مبيع سپارل ناممکن شو.او به کوم صورت کي چي مبيع سپارل متعذر او
ناممکن وي.په هغه صورت کي بيع فاسد وي. په دي وجه د قبضه نه وړاندي د نوې ميوو پيدا کيدلو په صورت
کي به بيع فاسد وي.



**وَلَوْ أَثْمَرَتْ بَعْدَ الْقَبْضِ** اوکه د قبضه نه روسته ( نوې) ميوې پيدا شوې **يَشْتَرِكَانِ فِيهِ** نو بائع او مشتري به دواړه په
دي کي شريك وي **لِلِاخْتِلَاطِ** ځکه چي ( مبيع او غيرمبيع) په دي کي مختلط شوی دی.

**حل اللغة:-** ① اثمرت،ميوه پيدا کړي، ② الاختلاط،ګډون، ③ الباذنجان،باتينګر، ④ البطيخ،خربوزه

**تشريح:-** اوکه دمشتري قبضه کاوه نه روسته نوې ميوې پيدا شوې.نو بيع به فاسد نه وي.ځکه چي مبيع سپارلې
شوې دي.البته د بائع ملك، يعنی هغه ميوې کومې چي د قبضه کاوه نه روسته پيدا شوی دی.د مشتري د ملك،
يعنی د هغه ميوو سره ملاؤ شوې دی.کومې چي مشتري اخستي دی.او اختلاط ( ګډون ) هم داسي شوې دي.چه
په دواړو کي توپير کول محال او ناممکن دی.په دي وجه به بائع او مشتري دواړه په دي ميوو کي شريك وي.

**وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي فِي مِقْدَارِهِ** اود زياتي ميوو په مقدار کي به د مشتري قول معتبر وي **لِأَنَّهُ فِي يَدِهِ** ځکه چي ميوې
دده په قبضه کي دی **وَكَذَا فِي الْبَاذِنْجَانِ وَالْبِطِّيخِ** اوهم دا حکم په باتينګرو او خربوزه کي دي.

**تشريح:-** اوکومې ميوې چي نوې پيدا شوې دی.ددي مقدار بيانولو کي به د مشتري قول معتبر وی.ځکه چي نوې
زړې ټولې ميوې د مشتري په قبضه کي دی.اود مقبوض مقدار په سلسله کي د قابض قول معتبر وی.په دي وجه
به دلته کي هم د قابض يعنی د مشتري قول معتبر وی.
هم دا حکم په باتينګرو، خربوزه او په نورو ميوو کښي هم دي.يعنی که يو کس باتينګر يا خربوزې يانورې ميوې
واخستلي.او بيا د قبضه کاوه نه وړاندي نوې باتينګر يا خربوزې پيدا شوې.نو بيع به فاسد وي.او که د قبضه نه
روسته پيدا شوې.نو بائع او مشتري به دواړه شريك وي.

**وَالْمَخْلَصُ أَنْ يَشْتَرِيَ الْأُصُولَ** اود خلاصی صورت دادي.چه ونې واخلی **لِتَحْصُلَ الزِّيَادَةُ عَلَى مِلْكِهِ** چي زياتوالي د
مشتري په ملك کي حاصل شی.

**حل اللغة:-** ① تغير،بدليدل، ② تحقق،ثابتيدل، ③ زيادة،زياتوالي، ④ عظم،غټوالي

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه د قبضه نه وړاندي د نوې ميوو پيدا کيدلو په صورت کي د بيع د فساد
نه د خلاصيدلو شکل دادي.چه مشتري د ميوو سره څه قيمت زياتي کړی.او ونې هم واخلی.اوس چي کومې هم
نوې ميوې پيداکيږي.هغه به ټولې د مشتري په ملك کي راځی.اود ټولو مالك به مشتري وي.او بيع به جائز وي.بيا
د ميوو شو کاوه نه روسته ونې هم په هغه قيمت( په کوم ئي چي اخستي وی ) د بائع په لاس خرڅي کړي.خودا هغه
وخت ممکن دی.چه کله بائع ته د مشتري د اړخه اطمينان وی.چه ماته به ئي هم په دي قيمت باندي واپس کوی.

## د ميوو د يو معين مقدار مستثنی کولو حکم

**قَالَ وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَبِيعَ ثَمَرَةً وَيَسْتَثْنِيَ مِنْهَا أَرْطَالًا مَعْلُومَةً** قدوري رحمه الله فرمائی.چه ميوې خرڅول او په دي کي د معلومو
رطلونو استثناء کول جائز نه دی **خِلَافًا لِمَالِكٍ** رحمه الله د امام مالك رحمه الله اختلاف دي **لِأَنَّ الْبَاقِيَ بَعْدَ الِاسْتِثْنَاءِ مَجْهُولٌ** ځکه
چي د استثناء نه روسته چي څه هم پاته شو.دا مجهول دی.

**حل اللغة:-** ① ارطال،جمع درطل ،يوه پيمانه، ② يستثني،مستثنی کړی، ③ نخل،د قجورې ونه، ④ معين،
مقررشوي

**تشريح:-** داحنافو رحمهم الله په نيزيه ونو کي د لګيدلو شوو ميوو خرڅول،او څو متعين رطلونه مستثنی کول جائز نه
دی.مثلاً داسي اووائی.چه ما ددي باغ ميوې خرڅي کړي.سوا د يو من نه.يا مې د دي باغ آمونه خرڅ کړل.سوا د
زرو امونو نه نه.نودا جائز نه دی.

**دليلنا®** د معلومو رطلونو استثناء کاوه نه روسته چي کوم مقدار پاته کيږي.هغه مجهول دي.په دي طريقه چي بائع
به په جنس کي د اعلی ميوو مطالبه کوی.او مشتري به ده ته ادنی معمولي دول ميوې ورکوی.نودا جهالت
به،،مفضی الی المنازعه،، وی.اود داسي جهالت په موجودګی کي بيع جائز نه وی.په دي وجه به په دي صورت
کي بيع جائز نه وی.

**مذهب مالك**رحمه الله: اود حضرت امام مالك رحمه الله په نيز جائز دی.

**دليله**: لکه څنګه چې باغ خرڅول اود متعين ونو استثناء کول جائز دی. دغه شان د معلوم رطلونو استثناء کول هم جائز دی.

| |
|---|
| بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ په خلاف ددې که باغ ئې خرڅ کړو وَاسْتَثْنَى نَخْلًا مُعَيَّنًا اود يو معين ونې استثناء ئې اوکړله لِأَنَّ الْبَاقِيَ مَعْلُومٌ بِالْمُشَاهَدَةِ ځکه چې کوم پاته دی.هغه په مشاهده سره معلوم دی. |

**تشريح**:- دا د يو تقديري سوال ځواب دې هغه دا چې که د باغ په ونو کې د يو څو معينو ونو استثناء اوکړی نو په پاته ونو کې عقد صحيح کيږی نو لکه څنګه چې د باغ د معينو ونو د استثنی په صورت کې عقد جائز کيږی دغه ډول پکار ده چې د ميوې نه د يو څو معلومو رطلونو استثناء اوکړی دا عقد دې هم جائزشی حالانکه تاسو وائې چې دا ناجائز دې نو په دې عبارت سره علامه مرغيناني هغې صورت د جواز وجه بيانوی اوفرمائی که باغ ئې خرڅ کړلو. اود يو څو معينو ونو استثناء ئې اوکړله.نود استثناء نه روسته چې کومې ونې پاته شی.چونکه دا په مشاهدې سره معلومې دی.په دې وجه په دې صورت کې بيع جائز ده.

| |
|---|
| قَالَ رَحِمَهُ اللهُ: قَالُوا مصنف رحمه الله فرمائی.چه مشائخ فرمائيلی دی هَذِهِ رِوَايَةُ الْحَسَنِ چې دا د حسن روايت دې وَهُوَ قَوْلُ الطَّحَاوِيِّ اوهم دا د طحاوی رحمه الله قول دی. |

**تشريح**:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه مشائخ فرمائيلی.چه په ونو کې د ميوو خرڅولو اود معلومو رطلونواستثناء. کاوه په صورت کې د بيع عدم جواز،د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن بن زياد روايت دې.اوهم دا د امام طحاوی رحمه الله قول دې.او امام شافعي او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی.

| |
|---|
| أَمَّا عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ يَنْبَغِي أَنْ يَجُوزَ[1] بهرحال د ظاهر الرواية مطابق جائز کيدل پکار دی. لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ مَا يَجُوزُ إِيرَادُ الْعَقْدِ عَلَيْهِ بِانْفِرَادِهِ ځکه قاعده داده.چه د کوم شیٔ جلا عقد کول جائز دی يَجُوزُ اسْتِثْنَاؤُهُ مِنَ الْعَقْدِ، د هغې د عقد نه استثناء هم جائز ده وَبَيْعُ قَفِيزٍ مِنْ صُبْرَةٍ جَائِزٌ اود غلې د ډيری نه د يوقفيز بيع جائز ده فَكَذَا اسْتِثْنَاؤُهُ نو ددې استثناء هم جائز ده. |

**حل اللغة**:- ① ينبغي،مناسب دی ② ،الانفراد،ځانله، ③ قفيز،ډيرې، ④ صبرة،غله

**تشريح**:- اوباني شو ظاهرالرواية حکم،نو ددې مطابق دارطال معلومه استثناء. کاوه په صورت کې هم جائز کيدل پکار دی.ځکه چې په ظاهر الرواية کې دا قاعده ذکر شوې ده.چه د کوم شیٔ جلا خرڅول جائز دی. ددې استثناء کول هم جائز دی.اود کوم شیٔ چې جدا خرڅول جائز نه دی.د هغې استثناء.کول هم جائز نه دی. مثلا دغلې په ډيری کې د يو قفيز بيع جائز ده.نو پوره ډيرې خرڅول،او يو قفيز مستثنی کول هم جائز دی.

| |
|---|
| بِخِلَافِ اسْتِثْنَاءِ الْحَمْلِ وَأَطْرَافِ الْحَيَوَانِ په خلاف د حمل اود اطرافو( اندامونو) د حيوان د استثناء کاوه نه لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ بَيْعُهُ، ځکه چې ددې جلا خرڅول جائز نه دی فَكَذَا اسْتِثْنَاؤُهُ نو ددې استثناء کول به هم جائز نه وی. |

**تشريح**:- په دې عبارت سره د ظاهر روايت د دې قاعدې وضاحت کوی چې د کوم شیٔ جد خرڅول جائز نه وی نو د هغې استثناء به هم جائز نه وی د هغې لپاره په مثال کې د حمل خرڅول بيانوی چې چونکه صرف حمل خرڅول جائز نه دی.په دې وجه به ددې استثناء کول هم جائز نه وی.مثلاً داسې اووائی. چې ما دا وزه خرڅه کړله.او ددې حمل مې خرڅ نکړو.او هم دغه ډول چونکه جلا اندام خرڅول جائز نه دی.په دې وجه به ددې استثناء کول هم جائز

[1] القول الراجح هو ظاهرالرواية كذا في الدرالمختار(٤\٥٤) ومجمع (٢\١٠) وردالمحتار(٤\٥٤) وتقريرات (٢\١٨) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٠)_



نه وی.مثلا داسې اووائی.چه ما دا وزه خرڅه کړله.خو ددې څرمن مې خرڅه نکړه.نوهم دغه ډول چونکه د باغ په ميوو کې د معلومو رطلونو جدا خرڅول جائز دی.نود معلومو رطلونو استثناء.کول هم جائز دی.

**الجواب من دليل عدم جواز العقد**: د متن په مسئله کې د ميوو نه د معين ميوې د استثناء.په اړه کې ئې د عقد د عدم جواز دليل دا بيان کړې وو چې د مستثنی مقدار نه روسته چې کومې ميوې پاته دی.هغه مجهول دی.نوموږ وايو.چه بلاشبه مجهول دی.خود وزن په اعتبار سره مجهول دی.د مشاهده په اعتبار سره مجهول نه دی.او دلته کې د ميوو بيع په اندازه سره شوې دې.په وزن سره نه دې شوې.او بيع چې کله په اندازه سره کيږی.نود مبيع وزن يا د کيل په اعتبارسره معلوميدل ضروری نه دی.بلکه په اشاره او مشاهده سره معلوميدل کافی وی.اودا خبره دلته کې موجود ده.په دې وجه د معلومو رطلونو استثناء. کاوه باوجود بيع ټيک ده.

## په وږوکښې دغنمو او اوريژو.او په پلوکښې د لوبيا اود کونزلو د بيع حکم

| |
|---|
| وَيَجُوزُ بَيْعُ الْحِنْطَةِ فِي سُنْبُلِهَا وَالْبَاقِلَاءِ فِي قِشْرِهِ اود غنمو ددې په بمبلو( وږی) کې ،اود لوبيا ددې په پلو کې خرڅول جائز دی وَكَذَا الْأَرُزُّ وَالسِّمْسِمُ اوهم دا حکم د اوريژو اود کونځلو دې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجُوزُ بَيْعُ الْبَاقِلَاءِ الْأَخْضَرِ،او امام شافعي رحمه الله فرمائی.چه د شنې ( کچه) لوبيا خرڅول جائز نه دی وَكَذَا الْجَوْزُ وَاللَّوْزُ وَالْفُسْتُقُ فِي قِشْرِهِ الْأَوَّلِ عِنْدَهُ رَحِمَهُ اللهُ اود امام شافعي رحمه الله په نيز هم دا حکم د بادام، پستې ،او غوزانو ددې په پوستونو (پوستکو)کې ( دننه د خرڅولو) دې وَلَهُ فِي بَيْعِ السُّنْبُلَةِ قَوْلَانِ، او په بمبلوکې د غنمو د خرڅولو په اړه کې دامام شافعي رحمه الله دوې (دوه) قوله دی وَعِنْدَنَا يَجُوزُ ذَلِكَ كُلُّهُ او زموږ په نيز دا واړه جائز دی لَهُ أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ مَسْتُورٌ د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه معقود عليه په داسې شیٔ کې مستور( بند) ده. بِمَا لَا مَنْفَعَةَ لَهُ فِيهِ چې په هغې کې هيڅ نفع نشته فَأَشْبَهَ تُرَابَ الصَّاغَةِ نود زرګرانو د ايرې مشابه شو. إِذَا بِيعَ بِجِنْسِهِ چې کله د خپل جنس په عوض خرڅ کړې شی وَلَنَا مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ زموږ دليل هغه حديث دې.کوم چې د رسول الله ﷺ نه روايت کړې شوې دې {أَنَّهُ نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ چې رسول الله ﷺ د کجورې د ونې خرڅولو نه منع فرمائيلې ده حَتَّى يُزْهِيَ، تردې چې دا رنګ اونيسی وَعَنْ بَيْعِ السُّنْبُلِ حَتَّى يَبْيَضَّ تردې چې دا رنګ .اود بمبلو خرڅول نه تردې چې سپين شی وَيَأْمَنَ الْعَاهَةَ} "[1] وَلِأَنَّهُ حَبٌّ مُنْتَفَعٌ بِهِ فَيَجُوزُ بَيْعُهُ فِي سُنْبُلِهِ كَالشَّعِيرِ وَالْجَامِعُ كَوْنُهُ مَالًا مُتَقَوِّمًا اود آفت نه محفوظ شی.او ځکه چې غنم داسې غله ده.چه ددې نه نفع اوچتولې شی.نوددې بيع هم ددې په بمبلوکې جائز ده.لکه د اوربشو بيع،او جامع په دې کې د هريو مال متقوم کيدل دی. |

**حل اللغة**:- ① حنطة ،غنم، ② سنبل،وږی، ③ باقلی،لوبيا ، ④ قشر،غټوالې ارز ،وريجې ، ⑤ سمسم، ، ⑥ اخضر،شين، ⑦ جوز،غز ⑧ لوز،بادام، ⑨ فستق،پسته، ⑩ تراب،خاوره، ⑪ الصاغة،د زرګر ايره

**تشريح**: صورت د مسئلې دادې.چه په وږوکې د غنمواو په پلو يعنی پوست کې د لوبيا خرڅول جائز دی. دغه ډول په وږی کې د اوريژو،او په پوست کې د کونزلو خرڅول جائز دی.

**دلائلنا**: نبی کريم ﷺ په کجوره کې دلګيدلې شوو کجورو بيع نه منع فرمائيلې ده.تردې چې په دې کې رنګ پيدا شی.يعنی که په کجوروکې رنګ پيدا شی.او پخې شی. نو ددې بيع جائز ده.اود غنمو د وږو بيع نه ئې منع فرمائيلې ده.تردې چې دا سپين شی.اود آفت نه محفوظ شی.يعنی که پاخه شی.نو ددې بيع جائز ده.دا حديث په وږو کې د غنمو د بيع جائز کيدلو باندې دلالت کوی.خود وږو د پخيدلو نه پس.نو هرکله چې د غنمو بيع ددې په پوستونو (پوستکو)کې جائز کيدل ثابت شو.نود پاته نورو ځيزونو بيع به هم ددې په پوستونو (پوستکو)کې دننه جائز وی. ② دوهم عقلی دليل دادې.چه غنم داسې غله ده.چه ددې نه نفع اوچتولې شی.نو په وږوکې دننه به ددې بيع جائز وی.لکه چې د اوربشو بيع ددې په وږو کې بالاتفاق جائز ده.اود قياس علت جامعه دادې.چه په

(١) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه المسلم في البيوع رقم ٥٠ وأبوداود في البيوع باب ٢٢ رقم ٣٣٦٧ والترمذي في البيوع باب ١٥ والنسائي في البيوع باب ٤٠ رقم ٤٢١٣ وابن ماجه في التجارات باب ٣٢ رقم ٢٢١٤ وأحمد في المسند (٥/٢)_

غنمو او اوربشو دوارو کې هريو قيمتي مال دی. د دوارو نه نفع اوچتولی شي. نو هر کله چې د اوربشو بيع ددې په وګوکې جائز ده. نو د غنمو بيع به هم ددې په وګو کې جائز وي. او پاتې شو دا وئيل چه ددې پوست يعنې بهوس غيرمنتفع به دی. نو دا غلط دی. ځکه چې په وګوکې دننه غنم ذخيره کولی، او محفوظ کولی شی. لکه چې د الله تعالى ارشاد دی. ﴿فَذَرُوهُ فِي سُنْبُلِهِ﴾ او دا بلاشبه نفع ده. په دې وجه به په وګوکې دننه د غنمو بيع جائز وي.

**مذهب الشافعي رحمه الله**⊛ حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي. د شني لوبيا خرڅول جائز نه دی. يعنې که ددې پلی شنه او کچه وي. نو ددې بيع جائز نه ده. دغه ډول د غوزانو، د بادامو، او د پستې خرڅول ددې په رومبي پوست کې جائز نه دی. د رومبي پوست نه مراد دادې. چه کوم مغز سره د متصل پوست سربيره کومه پيرشان پوست وي. او د غنمو د وګو د بيع په سلسله کې د امام شافعي رحمه الله دوې (دوه) قوله دی. يو د جواز او دوهم د عدم جواز دی. او زموږ په نيز ددې ټولو بيع جائز ده.

**دليله**⊛ د امام شافعي رحمه الله دليل دادې. چه معقود عليه يعنې غنم، لوبيا، د غوزانو چکې، د بادامو چکې، او د پستې چکې په پوست کې دننه دی. او پوست بې فائدې يو شی دی. د مشتري لپاره په دې کې هيڅ فائده نشته. او ددې پشان صورت کې بيع ټيک نه وي. ځکه چې معلومه نه ده. چه په پوست کې څه شته هم. او که هسې خالي دی.

**نظيره**⊛ نو دا د زرګر د ايرو مشابه شو. يعنې لکه څنګه چې د زرګر په ايرو کې د سرو او سپينو زرو ريزې وي. خو په نظر نه راځي. او په داسې شی کې پټ وي. چه د هغې څه نفع نه وي. يعنې ايره. نو د سرو زرو د ريزو والا ايره د سرو زرو په عوض، او د سپينو زرو والا ايره د سپينو زرو په عوض اخستل جائز نه دی. ځکه کيدای شي. چه په ايرو کې سپين يا سره زر هيڅ هم نه وي. دغه ډول چونکه په وګوکې دننه غنم، او په پوست کې دننه لوبيا، او د بادامو چکې وغيره پټ دی. او ددې سربيره پوست بې فائدې دی. نو ددې بيع به هم جائز نه وي.

بِخِلَافِ تُرَابِ الصَّاغَةِ، په خلاف د زرګر د ايرو لِأَنَّهُ إِنَّمَا لَا يَجُوزُ بَيْعُهُ بِجِنْسِهِ. ځکه چې ددې د خپل جنس په عوض خرڅول جائز نه دی لِاحْتِمَالِ الرِّبَا، ځکه چې په دې کې د ربا احتمال دی حَتَّى لَوْ بَاعَهُ بِخِلَافِ جِنْسِهِ تر دې چې د جنس په خلاف سره خرڅ کړې شي جَازَ، نو جائز ده وَفِي مَسْأَلَتِنَا لَوْ بَاعَهُ بِجِنْسِهِ او زموږ په دې مسئله کې که ئې دا د خپل جنس په عوض خرڅ کړې دی لَا يَجُوزُ أَيْضًا لِشُبْهَةِ الرِّبَا، نو بيا هم د شبهٔ ربا په وجه جائز نه دی لِأَنَّهُ لَا يَدْرِي قَدْرَ مَا فِي السَّنَابِلِ ځکه چې په سبلو (وګو) کې د غنمو مقدار معلوم نه دی.

**تشريح:**- په دې عبارت سره د امام شافعي رحمه الله د قياس ځواب ورکوی چې د زرګر ايره ددې د جنس په عوض خرڅول جائز نه دی. يعنې د سرو زرو د ريزو والا ايره د سرو زرو په عوض، او د سپينو زرو ايرو والا ايره د سپينو زرو په عوض خرڅول جائز نه دی. او د عدم جواز وجه د معقودعليه په ايرو کې مخفي (پټ) کيدل نه دی. لکه څنګه چې د امام شافعي رحمه الله خيال دی. بلکه د عدم جواز وجه د ربوا احتمال دی. که دا ايره ئې د خلاف جنس په عوض خرڅه کړله مثلاً د سرو زرو د ريزو والا ايره ئې د سپينو زرو په عوض، يا د سپينو زرو ريزو والا ايره ئې د سرو زرو په عوض خرڅه کړله. نو جائز ده. که صرف د معقود عليه مخفي کيدل د بيع د عدم جواز علت وو. نو د خلاف جنس په صورت کې هم بيع ناجائز کيدل پکار وو. حالانکه داسې نه ده. نو معلومه شوه. چه د معقود عليه مخفي کيدل، د بيع د عدم جواز علت نه دی. هم دا خبره که زموږ په ذکر شوې مسئله کې اوموندې شي. مثلاً د غنمو وګې ئې د غنمو په عوض خرڅ کړل. نو دا به هم ناجائز وي. ځکه چې په دې صورت کې هم د ربوا احتمال دی. معلوم نه ده. چه په وګوکې به څومره قدرې غنم وي. ددې د عوض نه کم دی. زيات دی. او که برابر دی. او دا خبره وړاندې تيره شوې ده. چه لکه څنګه ربوا حرام ده. دغه شبه د ربوا هم حرام ده. نو د ربوا د شبه نه د بچکيدلو لپاره د وګو بيع ددې د جنس يعنې د غنمو په عوض خرڅول ناجائز ګرځولی شوی دی.



## د کور په بيع کښې ددې د چابيانو حکم

وَمَنْ بَاعَ دَارًا او چا چه يو کور خرڅ کړو دَخَلَ فِي الْبَيْعِ مَفَاتِيحُ إِغْلَاقِهَا نو ددې د تالو چابياني به هم په بيع کې داخل وي.

**حل اللغة:**- ① دار، کور ② ، مفاتيح، جمع د مفتاح، کنجي، ③ اغلاق، جمع د غلق، تاله، ④ باع، خرڅ کړو

**تشريح:**- او تالې (جرنده) په دوې (دوه) قسمه وي. ① يو هغه قسم چې ورته قفل وائي. دا په کنډوکې اچولی شي. او بندولی شي. ② دوهم هغه کومې چې په دروازو کې مولښتي لګيدلې وي. چه دې ته دننه مولښتي ه تالې وائي. دلته کې هم دا دوهم ډول تالې مراد ده.

اوس مسئله داده. که يو کس کور واخستلو. او په دې کې دننه مولښتي ه تالې لګيدلې وي. او په المارو کې کهونډې لګيدلې وي. نو په دې بيع کې به کهنډې هضمي تالې او ددې کنجياني داخلې وي. او دا ټولې به د مشتري لپاره وي. که ددې ذکرئې کړې وي. او که نه وي کړې.

لِأَنَّهُ يَدْخُلُ فِيهِ ځکه چې تالې په بيع کې داخلې دی الْإِغْلَاقُ، لِأَنَّهَا مُرَكَّبَةٌ فِيهَا لِلْبَقَاءِ ځکه چې تالې په دې کې د پاتې کيدلو لپاره پر لګولې شوی دی.

**تشريح:**- هضمي تالې او د المارو کهونډې خو به ځکه داخل وي. چه دا د کور سره د بقاء او د قرار لپاره متصلې وي. او وړاندې تيرشوی دی. چه کوم شی د مبيع سره د بقاء او قرار لپاره متصل وي. هغه د ذکر کاوه نه بغير په بيع کې داخل وي. په دې وجه دننه مولښتي ه تالې او د الماروکهونډې د کور په بيع کې داخل وي.

وَالْمِفْتَاحُ يَدْخُلُ فِي بَيْعِ الْغَلْقِ مِنْ غَيْرِ تَسْمِيَةٍ، او د تالې په بيع کې کنجي د ذکر کاوه نه بغير داخليږي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ بَعْضٍ مِنْهُ ځکه چې کنجي د تالې د جزء په مرتبه کې ده إِذْ لَا يُنْتَفَعُ بِهِ بِدُونِهِ ځکه چې د کنجي نه بغير د تالې نه نفع نشي اخستلې کيدلې.

**تشريح:**- او چونکه د کنجيانو نه بغير د تالو نه نفع نشي اخستلې. په دې وجه به کنجياني د تالو د جزء په مرتبه کې وي. او د، کل شیء، په بيع کې چونکه ددې واړه اجزاء داخل وي. په دې وجه به د تالو په بيع کې کنجياني د بيانولو نه بغير داخل وي. نو حاصل دا شو. چه کنجياني خو به د تالو په بيع کې داخل وي. او قلف د کور په بيع کې داخل شوه. نو د نتيجه په طور به کنجياني هم د کور په بيع کې داخل وي.

## د ناپ کونکي او د ناقد ثمن د اجرت حکم

قَالَ وَأُجْرَةُ الْكَيَّالِ وَنَاقِدِ الثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ قدوري رحمه الله فرمائي. چه د ناپ کونکي او د ثمن (کره کهوټه) معلومونکي اجرت په بائع باندې واجب دی. أَمَّا الْكَيْلُ فَلَا بُدَّ مِنْهُ لِلتَّسْلِيمِ د ناپ کاوه اجرت ځکه واجب دی. چه مشتري ته د مبيع سپارلو لپاره مبيع ناپ کول ضروري دی وَهُوَ عَلَى الْبَائِعِ او سپارل په بائع باندې واجب دی وَمَعْنَى هَذَا إِذَا بِيعَ مُكَايَلَةً، او ددې معنى داده. چه هر کله دا شی د پيمانه په حساب سره خرڅ کړې شوې وي وَكَذَا أُجْرَةُ الْوَزَّانِ وَالذَّرَّاعِ وَالْعَدَّادِ او هم دغه ډول د وزن کونکي او په ګزونو سره د ناپ کونکي او د شمارکونکي اجرت هم (په بائع باندې واجب دی)

**حل اللغة:**- ① الاجرة، مزدوري، ② الکيال، تول کونکې، ③ ناقد، کره اطاق معلومونکې، ④ العداد، شمارکونکې

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې. که يو کس کيلي (ناپ کونکې) شی د کيل په ذريعه خرڅ کړلو. يا ئې موزون شی د وزن په ذريعه خرڅ کړلو. يا ئې په مذروعاتو. کې په ګز سره يو شی خرڅ کړلو. معدود ئې په شمار سره خرڅ کړلو. نو د کيل کونکي، او وزن کونکي، په ګزونو سره د ناپ کونکي، او د شمارکونکي اجرت به په بائع باندې واجب وي. دغه شان چې مشتري کوم ثمن ورکوی. ددې د کهره کوټه (اصلي ديسي) معلومونکي اجرت به هم په بائع باندې واجب وي. د کيل يا وزن وغيره کونکي اجرت خو به په بائع باندې ځکه واجب وي. چه د مبيع سپارل په بائع باندې واجب

دی.اود مبیع سپارل په کیل وغیره باندې موقوف دی.او قاعده ده.چه د واجب موقوف علیه هم واجب وی.په دې وجه کیل کول او وزن کول به په بائع باندې واجب وی.او هرکله چې کیل کول په بائع باندې واجب دی.نو که ده په بل باندې کیل اوکړلو.نو ددې اجرت به هم په بائع باندې واجب وی.

وَأَمَّا النَّقْدُاود ثمن ( کره کهوټه) معلومولو بیان چې کوم ذکر دې فَالْمَذْكُورُرِوَايَةُابْنِ رُسْتُمَ عَنْ مُحَمَّدٍادا د امام محمد ﷫ نه د رستم روایت دې لِأَنَّ النَّقْدَ يَكُونُ بَعْدَ التَّسْلِيمِخکه چې ثمن معلومول بائع ته د سپارلو نه روسته کیږی أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَكُونُ بَعْدَ الْوَزْنِ آیا نه ګورې،چه دا د وزن کاوه نه روسته کیږی وَالْبَائِعُ هُوَالْمُحْتَاجُ إِلَيْهِ لِيُمَيِّزَاود معلومولو اړتیا د بائع لپاره دې.چه بائع دا د هغې نه ممتاز( جدا) کړی مَاتَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُ مِنْ غَيْرِهِ د هغې نه د کوم سره چې دده حق متعلق شوې دې أَوْلِيَعْرِفَ الْمَعِيبَ لِيَرُدَّهُ یا خکه چې عیب دار معلوم کړی.او مشتری ته ئې واپس کړی.

**تشریح:**- او پاتې شو د ثمن اصلی دیسی او کهره کهوټه معلومول،نود امام محمد ﷫ نه د ابن رستم ﷫ روایت هم دادې.کوم چې قدوری ذکر کړې دې.چه د ثمن کتلو اجرت په بائع باندې واجب ده.اود امام محمد ﷫ نه د ابن سماعه روایت دادې.چه د ثمن کتلو اجرت په مشتری باندې واجب ده.د ابن رستم روایت دلیل دادې.چه ثمن معلومول،او ددې کهره کهوټه کتل،هغه وخت کیږی.چه کله مشتری ثمن بائع ته ورکړی.لکه تاسو اوګورئ.چه د ثمن کتل د وزن کاوه نه روسته کیږی.اود ثمن په وزن کاوه سره تسلیم متحقق کیږی.نو ثابته شوه.چه د ثمن کتلو اړتیا د تسلیم نه روسته راپیښیږی.اود ثمن سپارلو نه روسته د کهره کهوټه معلومولو اړتیا بائع ته وی.چه بائع اصلی د کوم سره چې دده حق متعلق دې.د دیسی نه جلا کړی.یا په دې وجه چې عیب داره معلوم کړی.او مشتری ته ئې واپس کړی.

وَفِي رِوَايَةِابْنِ سِمَاعَةَ عَنْهُ عَلَى الْمُشْتَرِي[1]اود امام محمد ﷫ نه د ابن سماعه روایت مطابق د ثمن معلومولو اجرت په مشتری باندې واجب دې لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى تَسْلِيمِ الْجَيِّدِ الْمُقَدَّرِ، خکه چې ده ته دکره مقرر شوی ثمن سپارلو اړتیا دې وَالْجَوْدَةُ تُعْرَفُ بِالنَّقْدِ او کره کیدل به دده په معلومولو سره معلومیږی كَمَا يُعْرَفُ الْقَدْرُبِالْوَزْنِ فَيَكُونُ عَلَيْهِ نود معلومولو اجرت په مشتری باندې واجب دې.

**تشریح:**- اود ابن سماعه روایت دلیل دادې.چه په مشتری باندې چونکه اصلی ثمن ( کوم چې په عقد بیع کې متعین شوې وی ) سپارل واجب دی.او اصلی کیدل په کتلو سره معلومیږی.لکه څنګه چې د ثمن مقدار په وزن کاوه سره معلومیږی.په دې وجه د ثمن معلومولو اجرت به په مشتری باندې واجب وی.

**د ثمن وزن کونکي اجرت به په چا وی؟**

قَالَ وَأُجْرَةُ وَزَّانِ الثَّمَنِ عَلَى الْمُشْتَرِي قدوری ﷫ فرمائی.اود ثمن تول کونکی اجرت په مشتری باندې واجب دې لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې مونږ بیان کړو. أَنَّهُ هُوَالْمُحْتَاجُ إِلَى تَسْلِيمِ الثَّمَنِ چه د ثمن سپارلو اړتیا مشتری ته دې. وَبِالْوَزْنِ يَتَحَقَّقُ التَّسْلِيمُ او سپارل په تول کاوه سره متحقق کیږی.

**تشریح:**- په مسئله کې څه خفا نشته.

**په بیع کښې به ثمن وړاندې او مبیع روسته حواله کوی**

قَالَ وَمَنْ بَاعَ سِلْعَةً بِثَمَنٍ قدوری ﷫ فرمائی.او چاچه څه سامان د ثمن په عوض خرڅ کړو قِيلَ لِلْمُشْتَرِي ادْفَعِ الثَّمَنَ أَوَّلًا نو مشتری ته به ونیلې شی.چه ته وړاندې ثمن اداکړه.

---

[1] القول الراجح هو رواية ابن سماعة ﷫ كذا في فتح القدير(٥\٤٩٦) والعناية (٥\٤٩٦) والخانية (٢\٣٩٨) والبحر الرائق(٥\٣٠٦) وردالمحتار(٤\٤٦) وخلاصة الفتاوى (٢\٩١) والهندية (٣\٢٨) نقلاً عن القول الراجح (٢\١١)-



**حل اللغة:**- ① سلعة،سامان، ② ادفع،ورکړه، ③ الدفع،ورکول، ④ المساواة،برابری

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.که یوکس خپل سامان، د ثمن یعنی د درهم یا دنانیرو په عوض خرڅ کړلو اوسامان هم دلته کې موجود دې.او په دواړو کې اختلاف شو.بائع وائی.چه ړومبې مشتری ثمن ماته حواله کړی.بیا به زه مبیع سپارم.او مشتری وائی.چه ړومبې دې ماته مبیع اوسپارلې شی.نو هله به زه ثمن ورکوم.نو په داسې صورت کې به مشتری ته ونیلې شی.چه مخکې ته ثمن ورکړه.

لِأَنَّ حَقَّ الْمُشْتَرِي تَعَيَّنَ فِي الْمَبِيعِ خکه چې د مشتری حق خو په مبیع کې متحقق شو فَيُقَدَّمُ دَفْعُ الثَّمَنِ لِيَتَعَيَّنَ حَقُّ الْبَائِعِ بِالْقَبْضِ نو وړاندې به ثمن ورکولې شی.چه په قبضه سره د بائع حق متعین شی لِمَا أَنَّهُ لَا يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ تَحْقِيقًا لِلْمُسَاوَاةِ خکه چې ثمن نه متعین کیږی.چه په دواړو کې مساوات متحقق شی.

**تشریح:**- دلیل دادې.چه په عقد د بیع کې مساوات ضروری دې.اود بیع په انعقاد سره د مشتری حق په مبیع کې متعین کیږی. خو چونکه ثمن په متعین کاوه سره نه متعین کیږی.په دې وجه صرف د بیع په انعقاد سره د بائع حق په ثمن کې نه متعین کیږی.او هرکله چې په انعقاد د بیع سره د بائع حق په ثمن کې نه متعین کیږی.نود بائع حق په ثمن کې د متعین کاوه لپاره ضروری دی.چه ړومبې مشتری ثمن بائع ته ورکړی.چه د حق په تعیین کې دواړه برابر شی.

قَالَ وَمَنْ بَاعَ سِلْعَةً بِسِلْعَةٍ أَوْثَمَنًا بِثَمَنٍ قدوری ﷫ فرمائی. اوچاچه سامان د سامان په عوض ،یا ثمن د ثمن په عوض خرڅ کړو قِيلَ لَهُمَا سَلِّمَا مَعًا نو دواړو ته به ونیلې شی.چه دواړه یوځائې اوسپاری.

**تشریح:**- اوکه سامان د سامان په عوض،یا ثمن د ثمن په عوض، خرڅ کړی.نو دواړو ته به ونیلی شی.چه په یو وخت کې بائع او مشتری دواړه یو بل ته اوسپاری.

لِاسْتِوَائِهِمَا فِي التَّعْيِينِ وعدمه دلیل دا دې چې دواړه په تعین او عدم تعین کې برابر دی فَلَا حَاجَةَ إِلَى تَقْدِيمِ أَحَدِهِمَا فِي الدَّفْعِ نو په اداکولو کې د هیڅ یو د تقدیم حاجت نشته.

**تشریح:**- دلیل دا دې که د سامان بیع د سامان په عوض کې ده.نو دواړه عوض په متعین کولو کې برابر دی.او که د ثمن بیع د ثمن په عوض کې ده.نو دواړه په نه متعین کولو کې برابر دی.نو هرکله چې په تعیین یا په عدم تعیین کې مساوات اوموندې شو.نو اوس د یوکس په سپارلو سره متعین کول به ترجیح بلا مرجح وی.په دې وجه به بائع او مشتری دواړه یو ځائې سپاری.چه د ترجیح بلامرجح قباحت پیدا نشی.

## باب خيار الشرط

ژباړه:- ( دا) باب د خیارشرط ( په بیان کې ) دې.

**تشریح:**- اقسام بیع د بیع دوې (دوه) قسمونه دی.① لازم ② غیر لازم، لازم هغه ده.چه په دې کې هیڅ قسمه څه خیار نه وی.غیر لازم هغه ده.چه په دې کې خیار وی.بیع لازم چونکه اصل ده.په دې وجه دا مقدم کړې شوه.او بیع غیر لازم خلاف اصل ده.په دې وجه دا مؤخر کړې شوه.

اقسام خیارالشرط◉دخیارشرط درې قسمونه دی.① بالاتفاق جائز،مثلا درې ورځې یاد درې ورځو نه د کم خیار ئې واخستلو.② بالاتفاق فاسد، مثلا مشتری اوونیل.چه ما دا شئ په دې شرط باندې واخستلو .چه ماته به خیارحاصل وی.یا به د څو ورځو خیار وی.یا د همیشه خیار دې.③مختلف فیه، مثلا د یومیاشت، یا دوې (دوه) میاشتې خیار ئې واخستلو.نودا د امام ابوحنیفه،امام زفر،اود امام شافعی ﷫ په نیز فاسد دې.اود صاحبینو ﷮ په نیزجائز دې.په خیار شرط کې د خیار اضافت شرط اړخ ته د ،،اضافت مسبب الی السبب،، د قبیلې څخه دې.خکه چې ددې خیارسبب شرط دې.فاضل مصنف ﷫ خیارشرط په ټولو خیاراتو باندې په دې

وجه مقدم كړلو.چه خيارشرط د ابتدائي حكم لپاره مانع دي.بيا ئې خياررؤيت ذكركړلو.ځكه چې خيار رؤيت د حكم تماميدلو لپاره مانع دي.بيا ئې خيارعيب ذكركړلو. چې دا د لزوم حكم لپاره مانع دي.

موانع البيع۞علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائيلي دي.چه موانع پنځه دي.① چې دا د علت د انعقاد لپاره خو مانع نشي كيدلې.البته د علت تمام كيدلو لپاره مانع وي.لكه د بل كس د مال بيع كول.دده داجازت نه بغير.ځكه چې د مالك د اجازت نه بغير د بيع انعقاد كيږي.خو بيع تام نه وي.ځكه چې د بيع تماميدل،د مالك په اجازت باندې موقوف دي. ②چه د علت يعني د بيع منعقد كيدلو نه منع كړي.لكه د مبيع آزاد كيدل.ځكه چې بيع پخپل محل كې منعقد كيږي.اود بيع محل مال دې.او آزاد مال نشي كيدلې.په دې وجه په آزادكې بيع قطعا نه منعقدكيږي. ③ چې د ثبوت حكم نه روسته دحكم تماميدل منع كړي.لكه د مشتري لپاره خيار رؤيت،ځكه چې د خيار رؤيت په صورت كې د بيع حكم ثابتيږي.خو تماميږي نه. ④ چې مانع د علت د انعقاد نه روسته ابتداء د حكم منع كوي.يعني مبيع د بائع د ملك نه اوځي.اود مشتري په ملك كښې نه داخليږي.⑤ چې د حكم لزوم منع كړي.لكه خيارعيب.ځكه چې د خيارعيب په صورت كې حكم بيع پوره طور ثابتيږي.خو لازميږي نه.

### د خيار شرط حكم او موده

قَالَ خِيَارُالشَّرْطِ جَائِزٌفِي الْبَيْعِ لِلْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِي په بيع كې خيار شرط بائع او مشتري ( دواړو) لپاره جائز دې وَلَهُمَا الْخِيَارُثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَمَادُونَهَا او ددې دواړو لپاره به درې ورځې يا ددې نه كم خيار وي.

تشريح:- خيارشرط صرف د بائع لپاره صرف د مشتري لپاره اوددواړو لپاره هم جائز دې.اود خيار شرط موده كه درې ورځې وي نو دا هم په اتفاق سره جائز دي

وَالْأَصْلُ فِيهِ مَارُوِيَ: او اصل په دې كې هغه حديث دې چې په هغې كې نقل دی أَنَّ حِبَّانَ بْنَ مُنْقِذِبْنِ عَمْرٍوالْأَنْصَارِيِّ رضي الله عنه كَانَ يُغْبَنُ فِي الْبِيَاعَاتِ، چې حبان بن منقذبن عمروالانصاري رضي الله عنه به په اخستلو خرڅولو كې تاوان كولو فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ إِذَا بَايَعْتَ نبي كريم ﷺ اوفرمائيل.چه كله ته بيع كوې فَقُلْ لَاخِلَابَةَ وَلِيَ الْخِيَارُثَلَاثَةَ أَيَّامٍ([1]) نو ته وايه.چه هيڅ دهوكه نشته.او ماته د درې ورځو اختيار دې.

حل اللغة:- ① يغبن،نقصان كوي،② البياعات،جمع د بيع،خرڅول،③ خلابة،دهوكه،④ ايام،جمع د يوم،ورځ

تشريح:- دخياردثبوت دليل دحبان بن منقذبن عمروالانصاري رضي الله عنه حديث دې.هغه داچه حبان بن منقذبن عمرو الانصاري رضي الله عنه كمزورې سړې وو.ددوی په سر كې په ذخم لګيدلو سره ددوی دماغ هم كمزورې شوی وو. نونبي كريم ﷺ اوفرمائيل.چه كله ته اخستل خرڅول كوې.نو ته وايه.چه هيڅ دهوكه نشته.ماله د درې ورځو خياردې.يعني ما لپاره درې ورځو پورې د غوراو فكر موقع ده.كه مناسب وی.نو عقد به جائز وی.ګنې فسخ كوم به ئې.ددې روايت نه د خيارشرط،اود خيارموده دواړه ثابتيږي.

وَلَايَجُوزُأَكْثَرُمِنْهَاعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ([2]) اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د درې ورځو نه زيات جائز نه دې وَهُوَقَوْلُ زُفَرَوَالشَّافِعِي د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله هم دا قول دې وَقَالَايَجُوزُإِذَاسَمَّى مُدَّةً مَعْلُومَةً او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي.چه جائز دي.چه كله څه معلومه موده ذكر كړې شي لِحَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما ځكه د ابن عمر رضي الله عنهما حديث دې "أَنَّهُ أَجَازَالْخِيَارَإِلَى شَهْرَيْنِ"([3]) چې نبي كريم ﷺ دوې (دوه) مياشتو پورې خيارجائز ګرځولې دې وَلِأَنَّ الْخِيَارَإِنَّمَاشُرِعَ لِلْحَاجَةِ إِلَى التَّرَوِّي

(1) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الحاكم فى المستدرك (٢٢/٢)_

(2) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى الدرالمنتقى (٢٤\٢) وردالمحتار(٥٢\٤) والخانية (٣٥٨\٢) والهندية (٣٨\٣) وجامع الرموز (١٣\٣) وفتح القدير(٥٠١\٥) نقلاً عن القول الراجح (١٢\٢)_

(3) قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب جداً نصب الراية (١٦/٤)_



اوځكه چې خيار د غوراوفكر د اړتيا په لحاظ سره مشروع شوې دې لِيَنْدَفِعَ الْغَبْنُ چه دهوكه لرې شي وَقَدْتَمَسُّ الْحَاجَةُ إِلَى الْأَكْثَرِ او كله كله د درې ورځو نه د زيات اړتيا هم راپيښيږي فَصَارَكَالتَّأْجِيلِ فِي الثَّمَنِ نوداد ثمن لپاره د ميعاد مقرر كاوه پشان شو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې أَنَّ شَرْطَ الْخِيَارِيُخَالِفُ مُقْتَضَى الْعَقْدِوَهُوَاللُّزُومُ چې د خيارشرط كول د عقد د مقتضى خلاف دې.او هغه د عقد لزوم دې وَإِنَّمَاجَوَّزْنَاهُ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ لِمَارَوَيْنَاهُ مِنَ النَّصِّ، اودا موږ خلاف قياس د ذكرشوی حديث په وجه جائز ګرځولې دې فَيُقْتَصَرُعَلَى الْمُدَّةِ الْمَذْكُورَةِ فِيهِ نو كومه موده چې په حديث كې ذكر ده.هم په دې به منحصر وی وَانْتَفَتِ الزِّيَادَةُ او زياتوالې به منتفي وی.

حل اللغة:- ① التروي،سوچ فكر، ② تمس،پيښيږی، ③ المدة،وخت\زمانه ④، انتفت،نفي شو

تشريح:- كه د درې ورځو نه زيات وی نو دحضرت امام ابوحنيفه، په نيز دغه ډول د امام زفر،اود امام شافعي رحمه الله په نيزد خيارجائز نه دې.

دلائله۞ ① يو دليل خو منقد بن عمروانصاري رضي الله عنه حديث دې كوم چې وړاندې تيرشو په هغې كې د دريو ورځو ذكر دې كه د دريو ورځو نه د زياتو خيارجائز وې نو نبي ﷺ به د زياتې مودې ذكر كړې وې ② دخيارشرط لګول،د عقد د مقتضى خلاف دې.ځكه چې عقد د بيع د لزوم تقاضا كوی.اود خيارشرط لګول د بيع د عدم لزوم تقاضا كوی.بهرحال د خيارشرط لګول د عقد د مقتضى خلاف دې.اود عقد د مقتضى خلاف شرط، عقد فاسد كوی.په دې وجه د قياس تقاضا خودا وه.چه دا عقد فاسد وی.خو موږ د حبان بن منقذ رضي الله عنه د حديث په وجه خلاف قياس دا عقد جائزګرځولې دې.او قاعده ده.چه كوم شئ په نص سره خلاف قياس ثابت شی.هغه پخپل مورد نص باندې منحصر وی.او په نص يعني په حديث كې چونكه د خيارموده درې ورځې ذكر ده.په دې وجه درې ورځې خيار خوبه جائز وی.او ددې نه زيات خيار به منتفي وی.

مذهب الصاحبين۞ صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه په شريعت كې د خيارشرط هيڅ موده مقرر نه ده.بلكه كومه موده هم چې ذكرشي.جائز ده.په دې شرط چې معلومه وی.

دلائلهما۞ ① د ابن عمر رضي الله عنهما حديث دې.يعني رسول اكرم ﷺ دوې (دوه) مياشتو پورې خيار جائز ساتلې دې. دې نه معلومه شوه.چه د خيار موده د درې ورځو پورې خاص نه ده.بلكه ددې نه زياته هم كيدلې شی.② خيارشرط ځكه مشروع شوې دې.چه ﴿من له الخيار﴾ ،،دچا لپاره چې خيار وی،، په معامله كې غور او فكراوكړی.اود نفع په صورت كې بيع نافذ كړی.اود نقصان په صورت كې بيع رد كړی.اود غور او فكر اړتيا كله د دريو ورځو نه زياته هم وی.په دې وجه به دې كې قليل او كثير دواړه برابر وی.اودا داسې ده.لكه مثلا كه ثمن پور وی.نو درې ورځې يا ددې نه زيات د څومره قدرې مودې چې اړتيا وی.مقررول جائز دی.دغه ډول په بيع كې هم چې د څومره قدر ورځو د غور اوفكر لپاره اړتيا وی. پخپل مينځ كې رضامندئ سره جائز ده.

إِلَّاأَنَّهُ إِذَاأَجَازَفِي الثَّلَاثِ خو كه په درې ورځو كې دننه اجازت وركړو جَازَعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دې خِلَافًالِزُفَرَ امام زفر رحمه الله اختلاف دې ،هُوَيَقُولُ: إِنَّهُ انْعَقَدَفَاسِدًا امام زفر رحمه الله فرمائي.چه دا بيع فاسد منعقد شوې ده فَلَايَنْقَلِبُ جَائِزًا نو په جائز به نه بدليږی وَلَهُ أَنَّهُ أَسْقَطَ الْمُفْسِدَقَبْلَ تَقَرُّرِهِ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه كوم شئ مفسد وو.د هغې د مستحكم كيدلو نه وړاندې ده ساقط كړو فَيَعُودُجَائِزًا نودا عقد به جائز وی كَمَاإِذَابَاعَ بِالرَّقْمِ لكه (مثلاً) يو كس د ليكلې شوی ثمن په عوض څه شئ خرڅ كړو وَأَعْلَمَهُ فِي الْمَجْلِسِ اوهم په دې مجلس كې ئې مشتري خبركړو نو بيع جائز كيږی وَلِأَنَّ الْفَسَادَبِاعْتِبَارِالْيَوْمِ الرَّابِعِ، او ځكه چې فساد د څلورمې ورځې په اعتبارسره دې فَإِذَاأَجَازَقَبْلَ ذَٰلِكَ لَمْ يَتَّصِلِ الْمُفْسِدُبِالْعَقْدِ، نو هركله چې ددې نه وړاندې ده اجازت وركړو.نو فاسدونكې شئ ددې عقد سره متصل نشو وَلِهَذَاقِيلَ: إِنَّ الْعَقْدَيَفْسُدُبِمُضِيِّ جُزْءٍمِنَ الْيَوْمِ الرَّابِعِ هم په دې وجه اووئيلې شو.چه د څلورمې ورځې يوجزء تيريدلو سره به عقد فاسديږی وَقِيلَ يَنْعَقِدُفَاسِدًا او وئيلې شوی دی.چه عقد به فاسد منعقد وی ثُمَّ يَرْتَفِعُ الْفَسَادُبِحَذْفِ الشَّرْطِ،

بيا د شرط (فاسد) په لرې كاوه سره به فساد لرې كيږي **وَهٰذَا عَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ** اودا قول د رومبئ وجهې په بنا (بنياد) دي.

**حل اللغة:-** ① **ينقلب** بدليږي، ② **اسقط** ساقط كړو ③، **الرقم** ليكلې شوې پيسې ④، **المضى** تيريدل

**تشريح:-** كه خيار د دريو ورځو نه زيات مقرر شوې وي نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز بيع جائز نه ده خو كه د درې ورځو نه د زياتو ورځو په شرط كي ده هم په درې ورځو كي دننه د بيع اجازت وركړو. يعني شرط خو ئې د درې ورځو نه د زياتو كړې وو. خوده په درې ورځو كي دننه بيع جائز كړله. نو په داسې صورت كي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دی.

**دليله** ◉ دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل په دوې (دوه) وجهو دي. اول داچه كوم شئ مفسد د بيع وو. يعني څلورمه ورځ، من له الخيار دا مستحكم كولو نه وړاندې ساقط كړې دي. اوهركله چې د استحكام نه وړاندې مفسد ساقط شو. نو بيع به جائز وي. لكه مثلاً يو كس داسې اووئيل. او كپړه ئې خرڅه كړله. چه كوم قيمت په دې كپړه كي ليكلې شوې دي. دا كپړې د هغې په عوض كي ده. او مشترى ته معلومه نه ده. چه په كپړه باندې څومره قيمت ليكلې شوې دي. خو بائع هم په دې مجلس كي مشترى خبر كړلو. نو بيع جائز كيږي. او لكه مثلاً په چهت كي لګيدلې يو لرګې ئې خرڅ كړلو بيا ئې دا راويستلو. او مشترى ته ئې وركړلو. نو ددې بائع جائز كيږي. نوهم دغه شان چې هركله د څلورمې ورځې پيل كيدلو نه وړاندې ،، من له الخيار ،، بيع جائز كړله. نو بيع به جائز وي.

⑨ دويمه وجه دا ده چه د بيع فساد د څلورمې ورځې په اعتبار سره دې. خو هركله چې ،، من له الخيار ،، ددې نه وړاندې اجازت وركړلو. نو فاسد كونكې شئ د بيع سره لاحق (مولبنتي) نشو. او هركله چې مفسد د بيع سره لاحق نشو نو بيع به هم فاسد نه وي.

هم دا وجه ده. چه بعض خلګ وائي. عقد د څلورمې ورځې په پيل كيدلو سره فاسديږي. او هركله چې د څلورمې ورځې پيل كيدلو نه وړاندې ئې بيع جائز كړله. نو بيع فاسده هم نشوه. بلكه جائز پاتې شوه. ددې قول علت په ﴿ولأن الفساد باعتبار اليوم الرابع.....﴾ سره بيان شوې دي. او بعض حضرات فرمائي. چه د درې ورځو نه د زيات شرط لګولو په وجه بيع فاسده منعقد شوې وه. خو چې كله ئې د دريو ورځو نه د زياتي شرط حذف كړلو. يعني مفسدئې ساقط كړلو. نو په بدليدلو سره جائز شوه. ددې قول علت په ﴿انه أسقط المفسد قبل تقرره.....﴾ سره بيان شوې دي. حاصل دا چې په دواړه قولونو اوددې په علت كي لف و نشر غير مرتب دې.

**مذهب زفر رحمه الله** ◉ په ذكر شوې مسئله كي د امام زفر رحمه الله په نيز كه د دريو ورځو نه وړاندې وړاندې ئې د درې ورځو نه د زياتې مودې خيارشرط ختم كړونو هم جائز نه ده.

**دليله** ◉ دامام زفر رحمه الله دليل دادې. چه عقد د دريو ورځو په شرط لګولو سره فاسد شوې وو. او قاعده ده. چې كوم شئ فاسد وي. او منعقد شي. هغه بيا نه بدليږي. او نه جائز كيږي. ځكه چې د شئ بقاء ددې د ثبوت موافق كيږي. په دې وجه به دا عقد هم هغه شان فاسد وي. اګرچه درې ورځو كي دننه بيع جائز كړي. ددې مثال داسې دي. لكه مثلاً يو كس يو درهم. د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ كړل. بيا ئې يو درهم ساقط كړلو. نودا بيع به صحيح نه وي. او لكه مثلاً د يو سړي په نكاح كي څلور ښځې دي. ده پنځمې سره نكاح اوكړله. بيا ئې په دې څلورو كي يوې ښځې ته طلاق وركړو. نو ددې پنځمې نكاح به ټيك نه وي. ځكه چې په رومبى صورت كي بيع، او په دوهم صورت كي پنځمې ښځې سره نكاح فاسده منعقد شوې وه. نود يو درهم ساقط كاوه په وجه، او يوې ښځې ته د طلاق وركاوه په وجه بدلول جائز نه دي.

**د درې يا څلورو ورځو پورې د ثمن اداكولو په شرط باندې د بيع حكم**

📖 **وَلَوِ اشْتَرٰى عَلٰى أَنَّهُ إِنْ لَمْ يَنْقُدِ الثَّمَنَ إِلٰى ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ** اوكه چا په دې شرط واخستلو. كه درې ورځو پورې ئې ثمن ادانكړل **فَلَا بَيْعَ بَيْنَهُمَا جَازَ** نود دواړو په منځ كي بيع نشته. نودا بيع جائز ده.



**تشريح:- تعريف الاقالة** ◉ ،، اقاله ،، په رضامندئ سره د بيع فسخ كاوه نوم دې. يعني پخپل مينځ كي د بيع فسخ كاوه نوم ،، اقاله ،، ده.

**قسماه** ◉ اقاله په دوې (دوه) قسمونه ده. ① كه د بيع فسخ په څه شرط باندې معلق نه وي. نودا اقاله صحيحه ده. مثلاً يوكس اووئيل. چه ما ستا په لاس داځيز خرڅ كړلو. په دې شرط چې ته اقاله اوكړې. په دې صورت كي اقاله چونكه په هيڅ شرط باندې معلق نه ده. په دې وجه به دا اقاله صحيحه وي. ② اوكه دبيع فسخ په څه شرط باندې معلق وي. نودا به اقاله فاسده وي. مثلاً يوكس اووئيل. چه ما ستا په لاس دا شئ خرڅ كړلو. په دې شرط كه تا دومره مودې پورې ثمن رانكړلو. نو زما او ستا په مينځ كي به دا بيع نه وي. دلته كي چونكه عدم بيع، يعني د بيع فسخ د ثمن نه ادا كاوه په شرط باندې معلق شوې ده. په دې وجه به دا اقاله فاسده وي.

**القاعدة** ◉ په بيع كي كه د اقاله صحيحه شرط اولګولې شي. نو بيع فاسديږي. نو كه د اقاله فاسده شرط اولګولې شو. نو په درجه اولى به بيع فاسد وي.

**صورة المسئلة** ◉ د مسئلې يو صورت دا دې چې دنقد خيار موده درې ورځې يا ددې نه كمه بيان كړې. مثلاً داسې اووائي. كه ما په درې ورځو كي دننه ثمن ادا نكړو. نودا بيع به ختمه وي. دا صورت د امام ابوحنيفه اود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دې. او هم دا استحسان دې.

**وَإِلٰى أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ** اوكه څلور ورځو پورې وي **لَا يَجُوزُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** [1] نود ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز جائز نه ده **وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَجُوزُ إِلٰى أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ أَوْ أَكْثَرَ**، او امام محمد رحمه الله فرمائيلي دي. چه د څلور ورځو يا زيات پورې جائز دې **فَإِنْ نَقَدَ فِي الثَّلَاثِ** بيا كه مشترى درې ورځو كي دننه ثمن اداكړل **جَازَ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا** نود ټولو په نيز جائز دي.

**تشريح:-** كه دخيارنقد موده ئې د دريو ورځو نه زياته بيان كړله. مثلاً داسې ئې اووئيل. كه ما په څلور ورځو كي دننه ثمن ادانكړو. نودا بيع به نه وي. دا صورت د شيخينو رحمهما الله په نيز ناجائز دي. البته د امام محمد رحمه الله په نيز جائز دي. خو كه د خيارنقد موده ئې د دريو ورځو نه زياته بيان كړله. خو مشترى ثمن په درې ورځو كي دننه ادا كړو. نودا د امام صاحب اود صاحبينو رحمهما الله درې واړو حضراتو په نيز جائز دي.

**وَالْأَصْلُ فِيهِ** او په دې حكم كي اصل دادې **أَنَّ هٰذَا فِي مَعْنَى اشْتِرَاطِ الْخِيَارِ** چې دا شرط د خيار په معنى كي دې **إِذِ الْحَاجَةُ مَسَّتْ إِلَى الِانْفِسَاخِ عِنْدَ عَدَمِ النَّقْدِ** ځكه چې د مشترى د ثمن نه ادا كاوه په صورت كي به د بيع فسخ كاوه اړتيا راپيښيږي. **تَحَرُّزًا عَنِ الْمُمَاطَلَةِ فِي الْفَسْخِ** چې د بيع په فسخ كاوه كي د ټل وَل (ټال مټول) نه بچ شي **فَيَكُونُ مُلْحَقًا بِهِ** نودا به هم خيارشرط سره ملحق كيږي.

**حل اللغة:-** ① **الانفساخ** فسخ كول ② ، **التحرز** ځان ساتل، ③ **المماطلة** ټال مټول، ④ **ملحق** مولبنتي (پيوست)

**تشريح:-** دخيارنقد د جواز لپاره دامام ابوحنيفه اود صاحبينو رحمهم الله د دليل حاصل دادې. چه دې حضراتو خيار نقد په خيارشرط باندې قياس كړې دې. اود دواړو په مينځ كي علت مشتركه حاجت او اړتيا دې. يعني لكه څنګه چې د هوكې او خسارې لرې كاوه لپاره د غور اوفكر كاوه د اړتيا په لحاظ سره خيار شرط مشروع شوې دې. دغه ډول د خيارنقد اړتيا هم راپيښيږي. په دې طريقه چې ډيركرته مشترى په ثمن ادا كولوكي وخت زيات تيروي. او دده د زيات وخت تيرولو په وجه بائع ، بيع فسخ كول غواړي. خو چونكه د بيع فسخ كاوه لپاره د مشترى رضامندى هم شرط دې. په دې وجه دې د مشترى رضامندئ نه بغير بيع نشى فسخ كولې. په دې وجه داسې شرط لګول ضروري دي. چه په دې سره د تاخير نه بغير بيع فسخ شي. او بائع د مشترى د ټل وَل نه خلاص شي. نو ددې مشتركه حاجت

[1] القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٥٠٢\٥) وردالمحتار(٥٤\١٤) و رالمحتار(٥٤\١٤) نقلاً عن القول الراجح (١٤\١٢)-

په وجه خيار نقد خيارشرط سره لاحق كړي شوي دي.او مشروع ګرځولي شوي دي.

وَقَدْمَرَّأَبُوحَنِيفَةَعَلَى أَصْلِهِ فِي الْمُلْحَقِ بِهِاو ابوحنيفه رحمه الله په خپل اصل باندې دې.كوم چې په ملحق به يعنى خيارشرط كې دې وَنَفَى الزِّيَادَةَ عَلَى الثَّلَاثِ اود درې ورځو نه د زيات نې نفى اوفرمائيله

تشريح:- په دې صورت كې حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله هم په دې خپل اصل باندې قائم دې.كوم چې په ،، مقيس عليه،، او ،، ملحق به،، يعنى په خيارشرط كې بيان شوې وو.چه د دريو ورځو خيارشرط جائز دې.خود دريو ورځو نه د زيات خيارشرط جائز نه دې.نو هم دغه حكم په مقيس او ملحق، يعنى د خيار نقد دې.چه د دريو ورځو خيارنقد خوجائز دې.خو ددې نه زيات جائز نه دې.

وَكَذَامُحَمَّدٌفِي تَجْوِيزِالزِّيَادَةِ هم دغه ډول امام محمد رحمه الله د درې ورځو نه زياتى كې دخيار په جائز ګرځولو كې ( خپل اصل باندې دې)

تشريح:- حضرت امام محمد رحمه الله هم پخپل دې اصل باندې دې.كوم چې په مقيس عليه يعنى په خيارشرط كې بيان شو.چه خيارشرط د دريو ورځو هم جائز دې.اود دريو ورځو نه دزيات هم.نو هم دغه حكم د مقيس يعنى د خيارنقد هم دې.چه خيارنقد هم د دريو ورځو او ددې نه د زيات جائز دې.

وَأَبُويُوسُفَ أَخَذَفِي الْأَصْلِ بِالْأَثَرِاو ابويوسف رحمه الله په اصل ( دخيارشرط) كې د ابن عمر رضي الله عنه اثر اختيار كړو وَفِي هَذَا بِالْقِيَاسِ او په دې الحاقي مسئله كې نې په قياس عمل اوكړو.

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه امام ابويوسف رحمه الله په اصل او مقيس عليه، يعنى په خيارشرط كې په تواتر( حديث ) باندې عمل كړې دې.او په دې مسئله يعنى په خيارنقد كې نې په قياس باندې عمل كړې دې.د حضرت امام ابويوسف رحمه الله مسلك بيانولو لپاره چې علامه مرغينانى رحمه الله كوم عبارت ذكر كړې دې.ددې تفسير په دوې (دوه) طريقو باندې شوې دې.① يودا تفسيردا چې په اصل كې درې ورځې دى.يعنى په خيارنقد كې د دريو ورځو ثبوت د ابن عمر رضي الله عنهما سره كيږى.اود ابن عمر رضي الله عنهما نه مراد دادې.چه ابن عمر رضي الله عنهما يو سړى باندې خپله اوښه خرڅه كړله.په دې شرط سره،چه كه په درې ورځو كې دننه دې ثمن ادانكړو.نو بيع به نه وى.په دې اثر سره د دريو ورځو د خيارنقد ثبوت كيږى.اود ،،وفى هذا،، نه مراد د درې ورځو نه زياتې دى.يعنى قياس مطلقاً د خيار د عدم جواز تقاضا كوى.نو ددې قياس په وجه د دريو ورځو نه زيات خيارنقد ناجائز ګرځولي شوي دي. ② دوهم تفسير دادې.چه د اصل نه مراد خيارشرط دې.اود ،، وفى هذا،، نه مراد خيار نقد دې.اود ،،اثر،، نه مراد د ابن عمر رضي الله عنهما دا حديث دې. «أنه جاز الخيار إلى شهرين» يعنى ددې اثر په وجه خيارشرط د دريو ورځو نه زيات هم جائز ګرځولي شوي دي.اود قياس نه مراد دادې.چه د عقد د مقتضى خلاف كيدلو په وجه خيار بالكل جائز كيدل نه وو پكار.خود حبان بن منقذ د واقعې په وجه خلاف قياس درې ورځې جائز ګرځولي شوي دي.اود دريو ورځو نه په زيات كې قياس باندې عمل كاوه سره خيار نقد ناجائز ګرځولي شوي دي.

وَفِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ قِيَاسٌ آخَرُاو په دې مسئله كې يو دوهم قياس هم دې وَإِلَيْهِ مَالَ زُفَرُاوهم دې اړخ ته امام زفر رحمه الله تلې دې وَهُوَأَنَّهُ بَيْعٌ شُرِطَ فِيهِ إِقَالَةٌ فَاسِدَةٌاو هغه دادې.چه دا عقد داسې بيع ده.چه په دې كې د اقاله فاسده شرط لګولې شوې دې لِتَعَلُّقِهَا بِالشَّرْطِ، ځكه چې اقاله شرط سره معلق ده وَاشْتِرَاطُ الصَّحِيحِ مِنْهَا فِيهِ مُفْسِدٌ لِلْعَقْدِ،او حال دادې.چه په عقد بيع كې د صحيح اقاله شرط لګول مفسد دعقد دى فَاشْتِرَاطُ الْفَاسِدِ أَوْلَى نود فاسد اقاله شرط لګول به په درجه اولى مفسد وى وَوَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ مَا بَيَّنَّا اود استحسان وجه هغه ده.كومه چې موږ بيان كړې ده.

حل اللغة:- ①مال،ميلان كړې ② ،الاقالة،فسخ كول،③الاشتراط،شرط لګول،④مفسد،فاسدونكې

تشريح:- په متن كې چې كومه مسئله ذكر شوه چې دنقد خيار موده درې ورځې يا ددې نه كمه بيان كړى.مثلاً داسې اووائى.كه ما په درې ورځو كې دننه ثمن أدا نكړو.نودا بيع به ختمه وى.دا صورت د امام ابوحنيفه اود



صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دې. او هم دا استحسان دې.نوصاحب دهدايه رحمه الله فرمايي چې په دې مسئله كې يوقياس هم دې كوم چې د امام زفر ،امام مالك،امام شافعى،اود امام احمد رحمه الله مذهب دې يعنى چې دا خيار نقد جائز نه دې ،اودا عدم جواز قياس دې او وړاندې چې د ابوحنيفه او صاحبين رحمهم الله د دې صورت د جواز كوم مذهب ذكر شوې دې نوهغه استحسان دې.

دليله ⑥داامام زفر رحمه الله دليل كوم چې علامه مرغينانى رحمه الله ددې مسئلې په آخر كې بيان كړې دې. دا دې چې دا عقد بيع داسې دې.چه په دې كې بيع د اقاله فاسده په شرط باندې معلق شوې ده.ځكه چې په «إن لم ينقد الثمن إلى ثلاثة أيام فلا بيع بينهما» كې عدم بيع فسخ د بيع،د ثمن په نه ادا كاوه باندې معلق كړې دې.او فسخ د بيع په څه شرط باندې معلق كاوه ته اقاله فاسده وائى.نو ثابته شوه.چه مشترى بيع د اقاله فاسده شرط سره مشروط كړې ده.حالانكه په بيع كې د اقاله صحيحه شرط لګول مفسد د بيع دى.نود اقاله فاسده شرط لګول، به په درجه اولى مفسد د بيع وى.په دې وجه د خيارنقد په شرط سره بيع فاسد وى.

## د بائع په خيار سره د مبيع حكم

قَالَ قدورى رحمه الله فرمايي وَخِيَارُالْبَائِعِ يَمْنَعُ خُرُوجَ الْمَبِيعِ عَنْ مِلْكِهِ اود بائع خيار( دا امر) منع كوى.چه مبيع د بائع د ملك نه اوځي.

حل اللغة:- ① خروج، وتل، ② يمنع،منع كوى، ③ المراضاة،دواړوطرفونه رضامندى، ④عتق،آزادى

تشريح:- وړاندې تير شوى دى.چه خيارشرط كله صرف د بائع لپاره وى.او كله صرف د مشترى لپاره وى.او كله د دواړو لپاره هم وى.كه خيارشرط صرف د بائع لپاره وى.نو مبيع به د بائع د ملك نه نه خارجيږى.

لِأَنَّ تَمَامَ هَذَا السَّبَبِ بِالْمُرَاضَاةِ ځكه چې ددې سبب پوره كيدل، د دواړو په رضامندئ باندې دى وَلَا يَتِمُّ مَعَ الْخِيَارِ وَهَذَا يَنْفُذُ عِتْقُهُ او خيار سره رضامندى نه پوره كيږى.په دې وجه د بائع آزادول نافذ كيږى.

تشريح:- دليل دادې.چه د عقدبيع پوره كيدل د بائع او مشترى په رضامندئ باندې موقوف وى.لكه چې د الله تعالى جل جلاله ارشاد دې. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ﴾ او په خيارشرط سره رضامندى نه پوره كيږى.په دې وجه مبيع د بائع د ملك نه نه اوځي.او چونكه د بائع د خيار په صورت كې مبيع د بائع دملك نه نه خارجيږى.په دې وجه اوونيلې شو.كه مبيع غلام يا وينځه وى.نو د خيار په موده كې د بائع په آزادولو سره آزاديږى.

وَلَا يَمْلِكُ الْمُشْتَرِي التَّصَرُّفَ فِيهِ او مشترى په دې كې د تصرف اختيار نه لرى وَإِنْ قَبَضَهُ بِإِذْنِ الْبَائِعِ اګرچه د بائع په اجازت سره نې په دې باندې قبضه كړې وى.

تشريح:- او مشترى ته په دې كې د تصرف كاوه هيڅ اختيار نه وى.اګرچه مشترى په دې باندې د بائع په اجازت سره قبضه كړې وى.

وَلَوْقَبَضَهُ الْمُشْتَرِي بيا كه مشترى په مبيع باندې قبضه اوكړله وَهَلَكَ فِي يَدِهِ فِي مُدَّةِ الْخِيَارِ اود خيار په موده كې دننه هغه مال د مشترى په قبضه كې هلاك شو ضَمِنَهُ بِالْقِيمَةِ نو مشترى به قيمت سره ددې ضمان اداكوى.

تشريح:- خو كه مشترى په مبيع باندې قبضه اوكړله.اود خيار په موده كې د مشترې د قبضه نه مبيع هلاك شو.نو په مشترى به د تاوان په طورددې قيمت واجب وى.ثمن به واجب نه وى.او كه د خيار د مودې نه روسته هلاك شو.نو ثمن به واجب وى.قيمت به واجب نه وى.ځكه چې د خيار موده تيريدلو په وجه د بائع خيار باطل شو.او بيع پوره شوه.اود بيع پوره كيدلو په صورت كې په مشترى باندې ثمن واجبيږى. قيمت نه واجبيږى.په دې وجه د خيارمودې نه روسته د مبيع هلاكيدلو په صورت كې په مشترى باندې ثمن واجب وى.قيمت به واجب نه وى.

لِأَنَّ الْبَيْعَ يَنْفَسِخُ بِالْهَلَاكِ اځکه چې د مبیع هلاکیدلو سره بیع فسخ کیږي لِأَنَّهُ كَانَ مَوْقُوفًا، وَلَا نَفَاذَ بِدُونِ الْمَحَلِّ ځکه چې بیع موقوف وه.اود محل نه بغیر بیع نه نافذ کیږي فَبَقِيَ مَقْبُوضًا فِي يَدِهِ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ په دې وجه مبیع د مشتري په قبضه کې د اخستلو لپاره د نرخ کاوه په طریقه پاته شو وَفِيهِ الْقِيمَةُ او په داسې قبضه کې قیمت واجبیږي.

حل اللغة:- ① ينفسخ،فسخ کیږي ② ،دون، بغیر ،③ زيادة،زیاتوالې ، ④ عظم،غټوالې

تشريح:- اود خیار په موده کې دننه د مبیع هلاکیدلو په صورت کې قیمت ځکه واجبیږي.چه د مبیع په هلاکیدلو سره بیع فسخ شوه.او بیع ځکه فسخ شوه.چه د خیار د وجود په وجه دا بیع موقوف وه.او بیع بغیرد محل، یعنی بغیر د مبیع نه نه نافذ کیږي.اودا خبره هم تاسو ته معلومه ده.چه دمشتري قبضه په مبیع باندې دعقد په وجه ده.او قاعده ده.چه ،،مقبوض بجهت العقد مضمون بالقيمة،، وي.یعني که په یو څیز باندې د عقد کاوه په غرض قبضه اوشي.اودا شئ هلاك شي.نو په قابض باندې ددې قیمت واجب وي.لکه څنګه چې په ،،مقبوض على سوم بالشراء،، کې کیږي.یعني که یوکس د نرخ کاوه لپاره د دوکان نه یوڅیز کورته راوړي.اودا شئ هلاك شي.نو په ده باندې ددې قیمت واجب وي.ثمن واجب نه وي.

وَلَوْهَلَكَ فِي يَدِ الْبَائِعِ اوکه د بائع په قبضه کې مبیع هلاك شو انْفَسَخَ الْبَيْعُ نو بیع به فسخ کیږي وَلَاشَيْءَ عَلَى الْمُشْتَرِي او په مشتري به هیڅ لازم نه وي اعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ الصَّحِيحِ الْمُطْلَقِ بیع په صحیح مطلق باندې قیاس کاوه سره.

تشريح:- اوکه دبائع د خیار په صورت کې مبیع د بائع په قبضه کې هلاك شي.نو بیع به فسخ وي.او په مشتري به هیڅ ضمان واجب نه وي.لکه څنګه چې په مبیع مطلق کې کیږي.که مبیع د بائع په قبضه کې هلاك شي.نو په مشتري باندې هیڅ ضمان نه واجبیږي.او بیع فسخ کیږي.

### د مشتري په خیار سره د مبیع حکم

قَالَ وَخِيَارُ الْمُشْتَرِي لَا يَمْنَعُ خُرُوجَ الْمَبِيعِ عَنْ مِلْكِ الْبَائِعِ قدوري رحمه الله فرماني.اود مشتري خیار، مبیع د بائع د ملك نه د وتلو نه نه منع کوي لِأَنَّ الْبَيْعَ فِي جَانِبِ الْآخَرِ لَازِمٌ ځکه چې بیع په دوهم اړخ کې لازم ده زیرا بیع درجانب آخر لازم است، وَهَذَا؛لِأَنَّ الْخِيَارَ إِنَّمَا يَمْنَعُ خُرُوجَ الْبَدَلِ عَنْ مِلْكِ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ؛ اودا ځکه چې خیار، د من له الخیار د ملك نه د خروج د بدل منع کوي لِأَنَّهُ شُرِعَ نَظَرًا لَهُ ځکه چې خیار په ده باندې د شفقت کاوه لپاره مشروع شوې دې دُونَ الْآخَرِ جهت د بل لپاره نه دې مشروع شوې.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که خیارشرط د مشتري لپاره وي.نو مبیع د بائع د ملك نه خارجیږي.دلیل دا دې.چه بیع د هغه سړي په حق کې غیر لازم وي.دکوم کس لپاره چې خیار وي.خود کوم کس لپاره چې خیار نه وي.دده په حق کې بیع لازم وي.تردې چې دې په بیع فسخ کاوه باندې هم قدرت نه لري.ددې وجه داده.چه خیارشرط د هغه کس د خیر خواهئ لپاره مشروع شوې دې.د کوم کس لپاره چې خیارثابت دې.اود کوم کس لپاره چې خیار نه وي.د هغه کس خیرخواهي مطلوب نه وي.نوهم ددې مقصد په خاطر ونیلې شوي دي.چه خیار دهغه کس د ملك نه عوض اوبنکل منع کوي.دکوم کس لپاره چې خیار وي.اود کوم کس لپاره چې خیار نه وي.دهغه د ملك نه عوض خارجیږي.نود مشتري د خیار په صورت کې خو ثمن د مشتري د ملك نه نه اوځي.البته بیع د بائع دملك نه اوځي.

قَالَ: إِلَّا أَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَا يَمْلِكُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [1] قدوري رحمه الله فرمانیلې دي.خو مشتري به د ابوحنیفه رحمه الله په نیز ددې مبیع مالك نه جوړیږي وَقَالَا: يَمْلِكُهُ، او صاحبین رحمهما الله فرماني.چه مشتري به ددې مالك وي لِأَنَّهُ لَمَّا خَرَجَ عَنْ مِلْكِ الْبَائِعِ ځکه چې کله مبیع د بائع د ملك نه اووتلو فَلَوْ لَمْ يَدْخُلْ فِي مِلْكِ الْمُشْتَرِي يَكُونُ زَائِلًا لَا إِلَى مَالِكٍ اوس که د مشتري په

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٣٥٨\٢) والهندية (٤٠\٣) نقلاً عن القول الراجح(١٥\٢)-



ملك کې داخل نشي.نودا به د مالك نه بغیر فضول وي وَلَا عَهْدَ لَنَا بِهِ فِي الشَّرْعِ حالانکه په شرع کې موږ ته داسې علم نه دې راکړې شوې

تشريح:- اوکله چې مبیع د بائع د ملك نه اووتله.نود مشتري په ملك کې داخلیږي که نه نو حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرماني.چه مبیع به مشتري په ملك کې نه داخلیږي. یعني مشتري به ددې مالك نه وي.او صاحبین رحمهما الله فرماني.چه مشتري ددې مالك کیږي.هم دا قول د امام مالك،امام شافعي،اود امام احمد رحمه الله دې.

دليلهما⊙ دصاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه مبیع خو د بائع د ملك نه اووتلو.اوس که د مشتري په ملك کې داخل نشي.نودا مبیع به د مالك نه بغیر فضول وي.حالانکه په شریعت د اسلام کې ددې هیڅ مثال نشته.چه یو مملوك شئ د یوکس د ملك نه اوځي.اود مالك نه بغیر موجود وي.په دې وجه ددې مبیع د مشتري په ملك کې داخلیدل ضروري دي.

السوال⊙ په دې دا اعتراض شوې دې.که د جُمات متولي د جُمات د خدمت لپاره یوغلام واخستلو .نودا غلام د بائع د ملك نه خو اووتلو.خود مشتري په ملك کې داخل نشو.ځکه چې متولي د اوقاف مالك نه وي.نو هرکله چې د مملوك شئ د مالك د ملك نه وتل،بغیر د مالك نه موجود کیدل ثابت شو.نودا ونیل به څنګه ټیك وي. چې په شریعت کې ددې هیڅ مثال نشته.

الجواب⊙ زموږ بحث په تجارت کې دې.اوتا چې کوم مثال بیان کړلو.ددې تعلق د اوقاف سره دې.نو په دې مثال سره نقص واردول ټیك نه دي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَخْرُجِ الثَّمَنُ عَنْ مِلْكِهِ اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه هرکله د مشتري د ملك نه ثمن اونه وتلو فَلَوْ قُلْنَا بِأَنَّهُ يَدْخُلُ الْمَبِيعُ فِي مِلْكِهِ نو که موږ اووایو.چه مبیع دده په ملك کې داخل شو لَاجْتَمَعَ الْبَدَلَانِ فِي مِلْكِ رَجُلٍ وَاحِدٍ حُكْمًا لِلْمُعَاوَضَةِ، نو په حکم د معاوضه به دواړه بدل د یو سړي په ملك کې جمع شي. وَلَا أَصْلَ لَهُ فِي الشَّرْعِ حالانکه په شریعت کې ددې هیڅ مثال نشته لِأَنَّ الْمُعَاوَضَةَ تَقْتَضِي الْمُسَاوَاةَ؛ ځکه چې معاوضه د مساوات تقاضا کوي وَلِأَنَّ الْخِيَارَ شُرِعَ نَظَرًا لِلْمُشْتَرِي اوځکه چې خیار د مشتري، په مشتري باندې د شفقت لپاره مشروع شوې دې لِيَتَرَوَّى فَيَقِفَ عَلَى الْمَصْلَحَةِ، چې دې غور اوفکر اوکړي.پخپل مصلحت باندې خبر شي وَلَوْ ثَبَتَ الْمِلْكُ رُبَّمَا يَعْتِقُ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ اخْتِيَارِهِ اوکه ملك ثابت شي.نو ډیر ځله مبیع دده د اړخه بې اختیاره آزادیږي بِأَنْ كَانَ قَرِيبَهُ فَيَفُوتُ النَّظَرُ په دې طریقه چې مبیع دده قریبي رشته دار وي.نو ( دده په حق کې ) خیرخواهي فوت کیږي.

حل اللغة:- ① المعاوضة،بدله، ② يتروى،سوچ کوي، ③ يقف،پوهیږي، ④ النظر،خیر خواهي

تشريح:- دامام ابوحنیفه رحمه الله دلائل دا دي چې دمشتري دخیار په صورت کې ثمن د مشتري د ملك نه نه اوځي.نو که مبیع هم دده په ملك کې داخل شي.نو په عقدمعاوضه کې به دواړه عوضونه ( ثمن او مبیع ) د یوسړي په ملك کې جمع شي.حالانکه په شریعت کې ددې هیڅ مثال نشته.ځکه چې عقدمعاوضه مساوات غواړي.که د یوکس مال پخپل ملك کې راشي.نو ددې عوض به د بل په ملك کې ځي.او دلته کې دواړه عوضونه د مشتري په ملك کې دي.نودا عقد معاوضه څنګه کیدلې شي.

السوال⊙ په دې دلیل اعتراض دې.هغه داچه یوسړي که د چا مدبر غصب کړلو.بیا مدبر د غاصب د قبضه نه اوتختیدلو.نو په غاصب به د مالك لپاره ضمان واجب وي.حالانکه مدبر د مولا د ملك نه نه اوځي.ځکه چې مدبر انتقال د ملك نه قبلوي.اوګورئ.دلته کې مدبر او دده بدل دواړه دمولا په ملك کې جمع شوي دي.نودا ونیل.چه د یو سړي په ملك کې د دواړه عوضونو جمع کیدلو په شریعت کې هیڅ مثال نشته.غلط دي؟

الجواب⊙ دادې. چې تادجنایت د ضمان مثال بیان کړې دې.حالانکه زمونږه خبره د معاوضه په ضمان کې دې.په دې وجه دې مثال سره نقض د واردول درست نه دي.

② دوهم دليل دادې چه دمشترى لپاره دده د خيرخواهئ په لحاظ خيارشرط مشروع شوې دې.چه مشترى غور اوفكر اوكړى.او په خپل مصلحت باندې خبر شى.چه اخستل مناسب دى.او كه نه اخستل.نو كه د مشترى د خيار باوجود، مشترى د مبيع مالك شو.نو ډير څله مبيع د مشترى د اړخه بغير دده د اختياره آزاديږى.په دې طريقه چې مبيع د مشترى ذى رحم محرم غلام وى.اود خيار باوجود دې د مشترى په ملك كې داخل شو.نودا غلام به دده د اړخه آزاد وى.ځكه چې د مدنى آقا ﷺ ارشاد دې. «من ملك ذارحم محرم منه عتق عليه» نو هر كله چې غلام د مشترى د اختياره بغير آزاد شو.نودمشترى په حق كې چې كومه خيرخواهى مطلوب وه.هغه فوت شوه.په دې وجه موږ اووئيل چه د مشترى د خيار په صورت كې به مشترى د مبيع مالك نه وى.

## د مشترى په قبضه كښې د مبيع هلاكيدلو حكم

قَالَ فَإِنْ هَلَكَ فِي يَدِهِ قدورى ﷫ فرمائى.بيا كه د مشترى په قبضه كې مبيع هلاك شو. هَلَكَ بِالثَّمَنِ نود ثمن په عوض به هلاك وى وَكَذَا إِذَا دَخَلَهُ عَيْبٌ اوهم دغه ډول كه په دې كې څه عيب داخل شو بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ په خلاف ددې چې كله د بائع لپاره خيار وى.

تشريح:- صورت دمسئلې دادې.كه خيارد مشترى لپاره وى.اود مشترى په قبضه كې مبيع هلاك شو.نو عقدبيع به لازم وى.او په مشترى به ثمن واجب وى.دغه ډول كه د خيار په موده كې د مشترى په قبضه كې په مبيع كې يو داسې څه عيب پيدا شو.چه دا ختميدونكې نه وى.نو بيا به هم بيع لازم وى.او په مشترى به ثمن واجب وى.خو كه خيار د بائع لپاره وى.او مبيع د مشترى د قبضې نه د خيار په موده كې هلاك شو.نو په دې صورت كې به په مشترى باندې قيمت واجب وى.ثمن به واجب نه وى.ددې دواړو صورتونو په مينځمې صورت (يعنى د مشترى د خيار په صورت) كې كه د خيار په موده كې مبيع د مشترى د قبضې نه هلاك شو.نو په مشترى به ثمن واجب وى.اود بائع د خيار په صورت كې كه د خيار په موده كې د مشترى د قبضې نه مبيع هلاك شو.نو په ده به قيمت واجب وى.

وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّهُ إِذَا دَخَلَهُ عَيْبٌ او وجه د توپير داده.چه كله په مبيع كې عيب داخل شو يَمْتَنِعُ الرَّدُّ نو (ددې) واپس كول ممتنع دى وَالْهَلَاكُ لَا يَعْرَى عَنْ مُقَدِّمَةِ عَيْبٍ او هلاكيدل هم ددې نه خالى نه وى.چه په دې كې وړاندې څه داسې عيب راشى فَيَهْلِكُ چې دا هلاك شى وَالْعَقْدُ قَدْ انْبَرَمَ حالانكه عقد پوره شو فَيَلْزَمُهُ الثَّمَنُ نو په ده به ثمن لازم وى.

حل اللغة:- ① يمتنع،منع كيږى، ② الرد،واپس كول، ③ انبرم،پوره شو، ④ يعرى،خالى وى

تشريح:- وجه د توپير داده.چه مبيع هركله د مشترى په قبضه كې عيب دار شو.اوخيارهم د مشترى لپاره وى.نو ځكه ئې چې په مبيع باندې قبضه كړې وه.هم هغه شان د هغې واپس كول متعذر شو.او هركله چې د مشترى لپاره مبيع واپس كول متعذر شو.نو خيار باطل شو.او بيع لازم شوه.اود بيع لازم كيدلو په صورت كې په مشترى باندې ثمن واجب وى.قيمت واجب نه وى.په دې وجه به دې صورت كې په مشترى باندې ثمن واجب وى.هم دا حكم هغه وخت دې.چه كله مبيع د مشترى په قبضه كې هلاك شى.ځكه د الله تعالى قانون دې.چه هر كس د مرګ نه وړاندې بيماريږى.اګرچه ددې بيمارئ احساس نه وى.اود يوڅيز د هلاكيدلو نه وړاندې په دې كې څه ناڅه عيب ضرور پيدا كيږى.نو هركله چې مبيع هلاك شو.نو ددې نه وړاندې به په دې كې څه عيب ضرور پيدا شوې وى.او هركله چې عيب پيدا شو.نو په مشترى باندې ددې واپس كول متعذر شو.او هركله چې په مشترى باندې مبيع واپس كول متعذر شو.نود مشترى خيار باطل شو.او بيع لازم شوه.اود نافذ كاوه په صورت كې مشترى باندې ثمن واجبيږى.په دې وجه په دې صورت كې هم مشترى باندې ثمن واجبيږى.قيمت نه واجبيږى.

بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د تيرې شوې مسئلې لِأَنَّ بِدُخُولِ الْعَيْبِ لَا يَمْتَنِعُ الرَّدُّ حُكْمًا بِخِيَارِ الْبَائِعِ ځكه چې په عيب داخليدلو سره د بائع د خيار په وجه حكماً واپس ممتنع نه وى فَيَهْلِكُ وَالْعَقْدُ مَوْقُوفٌ نو مبيع به په داسې حال كې هلاك وى.چه بيع موقوف ده.



تشريح:- اوپه كوم صورت كې چې خيار د بائع لپاره وى.اومبيع د مشترى په قبضه كې هلاكه شى.نو په مشترى به ثمن واجب وى.قيمت به واجب نه وى. ځكه چې د عيب پيدا كيدو په وجه د مبيع واپس كول متعذر نه دى.ځكه چې خيار د بائع لپاره دې.د مشترى لپاره نه دې.نو په مبيع كې د عيب پيدا كيدلو په وجه د بائع خيار نه ساقطيږى.بلكه دې د خپل خيار لاندې خپل عيب دار مبيع واپس اخستلې شى د دې امله په موده د خيار كې بيع موقوفه شوه اوچه د عقد د موقوف كيدو په حالت كې مبيع هلاكه شى نو په مشترى به قيمت لازم وى ثمن نه لكه ځكه چې په ،، مقبوض على سوم الشراء مضمون بالقيمة ،، وى.

## د درې ورځو په خيار باندې ښځه اخستلوكښې د نكاح حكم

قَالَ مام محمد ﷫ په جامع صغير كې فرمائيلي دى وَمَنْ اشْتَرَى امْرَأَتَهُ عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ اوچاچه خپل ښځه د درې ورځو د خيار په شرط واخستله لَمْ يَفْسُدْ النِّكَاحُ نو نكاح به فاسد نه وى لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهَا ځكه چې دا كس ددې مالك نشو لِمَا لَهُ مِنَ الْخِيَارِ ځكه چې دده لپاره خيار دې.

حل اللغة:- ① المراة،ښځه، ② الايام،جمع د يوم ،ورځ، ③ ينقص،عيب پيدا كوى، ④ يمتنع،منع دې

تشريح:- وړاندې يو اصل ذكر شوې وو د امام ابوحنيفه ﷫ په نيزد مشترى د خيار په صورت كې مبيع د بائع د ملك نه اوځى.او دمشترى په ملك كې نه داخليږى. اود صاحبينو ﷤ په نيزد مشترى په ملك كې داخليږى. په دې اصل باندې راروانې مسئلې بناء دى چې يو په كې دا ده يوكس خپله ښځه (چې دا د بل وينځه ده) ددې د مولا نه د درې ورځو د خيار په شرط باندې واخستله.نود امام ابوحنيفه ﷫ په نيز به نكاح فاسد نه وى.ځكه چې د خيارشرط په وجه مشترى ددې مالك نه دې.او هركله چې مالك نه دې.نو نكاح نه فاسديږى.ځكه چې نكاح په ملك يمين سره فاسديږى. او ملك يمين مشترى ته د خيار په وجه حاصل نشو.په دې وجه به نكاح فاسد نه وى.

فَإِنْ وَطِئَهَا وكه ددې سره وطى اوكړى لَهُ أَنْ يَرُدَّهَا [1] نوهم واپس كولاى شى لِأَنَّ الْوَطْءَ بِحُكْمِ النِّكَاحِ ځكه چې وطى په حكم د نكاح ده إِلَّا إِذَا كَانَتْ بِكْرًا خوچه كله دا باكره وى (نو خيار د مشترى به باطل او بيع به لازم وى لِأَنَّ الْوَطْءَ يَنْقُصُهَا، ځكه چې وطى دا عيب داره كوى وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ﷫ اودا د امام ابوحنيفه ﷫ په نيز دى.

تشريح:- اوكه مشترى د خيار په موده كې دې سره وطى اوكړله.نو په دې وطى سره دده خيار نه باطليږى.بلكه مشترى ته د خپل خيار په وجه ددې بيع د رد كاوه اخيارحاصل دې.ځكه چې مشترى كومه وطى كړې ده.هغه ئې د منكوحه كيدلو په وجه كړې ده.د وينځې كيدلو په وجه ئې نه ده كړې.نودا وطى به د بيع اجازت نشى ګڼړلې.اود مشترى خيار به نشى ساقطولې.خوكه دا محترمه اوسه پورې باكره وى.او مشترى چې ددې ميړه هم دې.ده ددې سره وطى اوكړله.نو په دې وطى سره به دده خيار ساقطيږى.او بيع به لازم وى.او هركله چې بيع لازم شوه.نو نكاح فاسد شوه.ځكه چې د ملك يمين نه روسته نكاح پاته نه پاتې كيږى.دليل دادې.چه د باكره سره وطى كول باكره عيب داره جوړوى.اود مبيع عيب داره كيدلو نه روسته نشى واپس كيدلې.نو هركله چې د مشترى لپاره ددې مبيعه وينځې په وطى سره د عيب داره كيدلو په وجه واپس كول متعذر شو.نود مشترى خيار به ساقط وى.او بيع به لازم وى.دا واړه تفصيل د امام اعظم ﷫ په نيز دې.

وَقَالَا يَفْسُدُ النِّكَاحُ او صاحبين ﷤ فرمائى.چه نكاح فاسديږى لِأَنَّهُ مَلَكَهَا ځكه چې دې ددې مالك شوې دې وَإِنْ وَطِئَهَا وكه دې سره ئې وطى اوكړله لَمْ يَرُدَّهَا نو واپس كولې ئې نشى (ځكه چې خيارساقط شو) لِأَنَّ وَطْأَهَا بِمِلْكِ الْيَمِينِ فَيَمْتَنِعُ الرَّدُّ نو واپس كول ممتنع شو وَإِنْ كَانَتْ ثَيِّبًا اګرچه دا ښځه ثيبه وى.

تشريح:- صاحبين ﷤ فرمائى.چه د مشترى د خيار باوجود نكاح فاسديږى.ځكه چې د صاحبينو ﷤ په نيز

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في الخانية (٢\٣٥٩) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٦)-

مشتري د خيار باوجود د مبيع مالك کيږي.نو هرکله چې مشتري ته ملك يمين حاصل شو.نو ملك د نكاح به ساقط وي.او که مشتري دې وينځې سره د خيار په موده کې وطی اوکړله.نو په دې سره به دده خيار ساقط شي.ځکه چې ده د ملك يمين په وجه وطی کړې ده.که دا باكره وي.او که ثيبه وي.اود ملك يمين په وجه وطی کول،ددې خبرې علامت دې چه مشتري په بيع باندې راضی دې.اوپه بيع باندې رضامندي ښکاره کول، خيار ساقطوي.نو هرکله چې خيار ساقط شو. نود مشتري لپاره ددې رد کول ممتنع شو.

**د ذکرشوې مسئلې دريمې مثال**

وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ أَخَوَاتٌ كُلُّهَا او ددې مسئلې ډير مثالونه دی. تُبْتَنٰى عَلٰى وُقُوْعِ الْمِلْكِ لِلْمُشْتَرِيْ بِشَرْطِ الْخِيَارِ وَعَدَمِهِ: چې په دې اصل باندې مبنی دی.چه د خيار په شرط اخستلې شوی شی:کې مشتري لپاره ( د صاحبينو رحمهما الله په نيز) ملك ثابتيږي.( اود امام صاحب رحمه الله په نيز نه ثابتيږي) مِنْهَا عِتْقُ الْمُشْتَرٰى عَلَى الْمُشْتَرِيْ منجمله د هغې نه يو د خيار په موده کې په مشتري باندې د مبيع آزاديدل إِذَا كَانَ قَرِيْبًا لَّهُ فِيْ مُدَّةِ الْخِيَارِ چې کله دا د مشتري ذی رحم محرم وي.

حل اللغة:- ① اخوات،جمع د اخت،نظير② ، تبتنى،بنا کيږي، ③ عتق،آزادی، ④ المدة،موده

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په تيرشوی اصل باندې ډيرمثالونه مبنی دی.منجمله د هغې نه يو دادې.چه يو سړي خپل ذی رحم محرم غلام د د رې ورځو د خيار په شرط واخستلو.نودا غلام د صاحبينو رحمهما الله په نيز دخيار په موده کې آزاديږي.ځکه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز د مشتري د خيار په صورت کې دمشتري لپاره ملك د مبيع ثابتيږي.نو هرکله چې مشتري دخيار په موده کې د غلام مالك شو.او غلام دده ذی رحم محرم دې.نود «من ملك ذارحم محرم منه عتق عليه» په وجه سره دا غلام د مشتري د اړخه آزاديږي.اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مشتري چونکه د خيار په موده کې د غلام نه مالك کيږي.په دې وجه دا غلام دخيار په موده کې د مشتري د اړخه نه آزاديږي.

**دوهم مثال**

وَمِنْهَا: عِتْقُهُ او منجمله ددې نه د غلام آزادول دی إِذَا كَانَ الْمُشْتَرِيْ حَلَفَ کله چې مشتري قسم اوخوړلو إِنْ مَلَكْتُ عَبْدًا فَهُوَ حُرٌّ که زه د غلام مالك شوم.نوهغه دې آزاد وي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ إِنِ اشْتَرَيْتُ په خلاف د هغه صورت چې کله اووائی.که ما واخستلو فَهُوَ حُرٌّ لِأَنَّهُ يَصِيْرُ كَالْمُنْشِئِ لِلْعِتْقِ بَعْدَ الشِّرَاءِ ځکه چې دې به د اخستلو نه روسته آزادی ايجادونکې ګرځي فَيَسْقُطُ الْخِيَارُ ځکه به خيار ساقطيږي.

حل اللغة:- ① حلف،قسم خوړلې دی، ② يصير،ګرځي ③ ، العتق،آزادی ④ ، سقط،ساقط شو

تشريح:- دوهم مثال دادې.که يو کس اووئيل. «إن ملكت عبداً فهو حر» بيا دې سړي يو غلام د درې ورځو د خيار په شرط سره واخستلو.نود امام صاحب رحمه الله په نيز دا غلام آزاديږي.ځکه چې د حضرت امام صاحب رحمه الله په نيزدخيار په موده کې دننه د مشتري د خيار په صورت کې د مشتري لپاره ملك مبيع نه ثابتيږي.نو هرکله چې مشتري د غلام مالك نشو.نود «إن ملكت» شرط د نه موجود کيدلو په وجه غلام نه آزاديږي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز چونکه مشتري د مشتري د خيار په صورت کې د خيار په موده کې دننه د مبيع مالك کيږي.په دې وجه ددوی په نيز د «إن ملكت» شرط اوموندې شو.او هرکله چې شرط موجود شو.نو غلام به هم آزاد وي.ددې په خلاف که يو کس اووئيل. «إن اشتريت عبداً فهو حر» او بيا ئې غلام د خيار په شرط واخستلو.نود درې واړو حضراتو په نيزدا غلام د خيار په موده کې آزاديږي.ځکه چې آزادی په شراء ( اخستلو) باندې معلق شوې ده.او شراء موجود شوه.نو آزادی به هم واقع کيږي.ددې وجه داده.چه معلق بالشرط دشرط موجود کيدلو په وخت مرسل او منجز وي.يعنی که يو شی په څه شرط باندې معلق کړې شی.نود شرط د وجود په وخت داسې کيږي.ګويا چې ده د شرط نه بغير دا شی واقع کړې دې.اود شرط نه بغير واقع کولوسره دا شی په يقين سره واقع کيږي.نو دلته کې چونکه آزادی په



شراء باندې معلق شوې وه.په دې وجه د شراء نه روسته داسې اوشو.ګويا چې ده بغير د څه تعلق نه دا ازاد کړې دې.اود تعلق نه بغير ازادولو سره آزادی واقع کيږي.په دې وجه د شراء نه روسته دا غلام د درې واړو حضراتو په نيز آزاديږي.

**دريم مثال**

وَمِنْهَا او منجمله ( په دغه مسئلوکې ) يوه مسئله داده أَنَّ حَيْضَ الْمُشْتَرَاةِ فِي الْمُدَّةِ لَا يُجْتَزَأُ بِهِ عَنِ الْاِسْتِبْرَاءِ عِنْدَهُ چې د خيار په موده کې اخستې شوې وينځې ته کوم حيض راغلې امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به استبراء کې کافی نه وي وَعِنْدَهُمَا يُجْتَزَأُ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به کافی وي.

حل اللغة① المشتراة،اخستې شوې ښځه، ② يتجزئ،تقسيميږی③ الاستبراء،په رحم کې د بچي نشتوالي

تشريح:- القاعدة⊛ددې مثال نه وړاندې د تمهيد په طور دا خبره په ذهن کې کينوئ.چه يوه وينځه که ديو ملك نه بل ملك اړخ ته منتقل کړې شی.نو په دوهم مالك باندې د وينځې نه استبراء کول واجب دی. استبراء ديوکامل حيض تيريدلو نوم دې.يعنی دوهم مالك سره چې کله دا وينځه يو حيض تيرکړی.نو هله به د دوهم مالك لپاره دې سره جماع کول حلاله وي.اودا استبراء ځکه ضروری ده.چه دا معلومه شی.چه ددې وينځې رحم د ړومبی مالك د نطفې وديدلو نه فارغ دې.

صورة المسئلة⊛چه يوسړی د دريو ورځو د خيار په شرط باندې يوه وينځه واخستله.اتفاق سره د خيار په موده کې دې وينځې ته حيض راغئ.بيا مشتري دا بيع جائز اوګرځوله.نودحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا حيض د استبراء لپاره کافی نه دې.ځکه چې د امام صاحب رحمه الله په نيز دخيار په موده کې د مشتري د خيار په صورت کې د مشتري لپاره ملك ثابت نه وي.نودا حيض د مشتري د مالك کيدلو نه وړاندې موجود شو.او کوم حيض چې دمالك جوړيدلو نه وړاندې موجود شی.هغه د مالك جوړيدلو نه روسته د استبراء لپاره کافی نه وي.په دې وجه دا حيض د امام صاحب رحمه الله په نيز د استبراء لپاره کافی نه دې.بلکه مشتري به په بل حيض سره استبراء کوي.

مذهب الصاحبين رحمهما الله⊛اود صاحبينو رحمهما الله په نيز مشتري چونکه د خيار په موده کې د مبيع مالك وي.په دې وجه به دا حيض د مشتري مالك کيدلو نه روسته وي.اود مالك کيدلو نه روسته چې مبيعه وينځې ته کوم حيض راځي.هغه د استبراء لپاره کافی وي.په دې وجه به دا حيض د استبراء لپاره کافی وي.

وَلَوْ رُدَّتْ بِحُكْمِ الْخِيَارِ إِلَى الْبَائِعِ او که د حکم خيار په وجه دا وينځه بائع اړخ ته واپس کړې شوه لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْاِسْتِبْرَاءُ عِنْدَهُ، نود امام صاحب رحمه الله په نيز به په ده باندې استبراء واجب نه وي وَعِنْدَهُمَا يَجِبُ إِذَا رُدَّتْ بَعْدَ الْقَبْضِ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز که د قبضه نه روسته واپس کړې شوه.نو( په بائع به) استبراء واجب وي.

تشريح:- اوکه مشتري په خپل خيار سره دا مبيعه وينځه بائع اړخ ته واپس کړله.او بيع ئې فسخ کړله. نود امام اعظم رحمه الله په نيز په بائع باندې ددې استبراء کول واجب نه دی.د وينځې دا واپسی که د مشتري دقبضه کولونه وړاندې وي.او که د قبضه کاوه نه روسته وي.ځکه چې استبراء په ،، انتقال ملك الی ملك،، سره واجبيږي.او دلته کې داخبره اونه موندې شوه.ځکه چې مبيعه وينځه د امام صاحب رحمه الله په نيزدخيار په موده کې د مشتري په ملك کې نه داخليږي.نو هرکله چې مبيعه وينځه د مشتري په ملك کې داخله نشوه.نو بائع اړخ ته په واپس کولوسره ،،انتقال ملك الی ملك،،او نه موندې شو.او هرکله چې ،،انتقال ملك الی ملك،،موجود نشو.نو په بائع به استبراء کول هم واجب نه وي.

مذهب الصاحبين رحمهما الله⊛اود صاحبينو رحمهما الله په نيز که مشتري وينځه باندې قبضه اوکړله.او بيا ئې واپس کړله.نو په بائع باندې استبراء کول واجب دی.ځکه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز د مشتري د خيار په صورت کې ، مشتري د خيار په موده کې د مبيع مالك وي.نو هرکله چې مشتري ددې مبيع وينځې مالك شو.نو اوس بائع اړخ ته په واپس کاوه سره ،،انتقال ملك الی ملك،، اوموندې شو.اوچونکه د ،،انتقال ملك الی ملك،، په صورت کې استبراء

واجب وي.په دې وجه به په بائع باندې استبراء واجب وي.خو كه د قبضه كاوه نه وړاندې ئې واپس كړله.نو استحساناً د صاحبينو په نيز هم استبراء كول په بائع باندې واجب نه وي.اګرچه د قياس تقاضا داده.چه استبراء واجب وي.ځكه چې د مشترى لپاره دملك ثابتيدلو نه روسته بيا دوباره د بائع لپاره ملك ثابت شوې دې.نو ددې نوى ملك په وجه په بائع باندې قياساً استبراء كول واجب دى.خو استحساناً واجب نكړې شو.

**خلورم مثال**

**وَمِنْهَا** او من جمله (ددغه مسئلو نه) يوه مسئله داده **إِذَا وَلَدَتِ الْمُشْتَرَاةُ فِي الْمُدَّةِ بِالنِّكَاحِ** كه اخستې شوې وينځې د نكاح په وجه د خيار په موده كې بچې راوړو **لَا تَصِيرُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ عِنْدَهُ** نود امام ابوحنيفه په نيز به دا وينځه د مشترى ام ولد نه وي **خِلَافًا لَهُمَا** د صاحبينو اختلاف دې.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه يو سړى خپله منكوحه وينځه ددې د مالك نه د درې ورځو د خيار په شرط سره واخستله.د مشترى قبضه كاوه نه وړاندې د بائع په قبضه كې ددې وينځې د خيار په موده كې بچې پيدا شو.نودا وينځه به د امام ابوحنيفه په نيز د مشترى ام ولد نه وي.ځكه چې د امام صاحب په نيز دخيار په موده كې مشترى د مبيع مالك نه وي.نو هركله چې مشترى ددې مبيعه وينځې مالك نشو.نو بچې د مشترى د منكوحې نه پيداشو.د مملوكې نه نه دې پيدا شوې.حالانكه وينځه هغه وخت ام ولد وي.چه كله د مملوكه كيدلو په حالت كې ئې بچې پيداشى.د منكوحه كيدلو په حالت كې نه.اود صاحبينو په نيز به ام ولد شى.ځكه چې د صاحبينو په نيز د خيار په موده كې مشترى د مبيع مالك كيږى.نود صاحبينو په نيز چې دا د مشترى په ملك كې راغله.نو بچې ئې پيداشو. او هركله چې د مشترى په ملك كې ئې بچې پيدا شو.نودا وينځه به د مشترى ام ولد وي.

**پنځم مثال**

**وَمِنْهَا** منجمله (د هغه مسئلو نه) يوه مسئله داده **إِذَا قَبَضَ الْمُشْتَرِي الْمَبِيعَ بِإِذْنِ الْبَائِعِ** كه مشترى په مبيع باندې د بائع په اجازت سره قبضه اوكړله **ثُمَّ أَوْدَعَهُ عِنْدَ الْبَائِعِ** بيا ئې د بائع سره دا امانت كيخودلو. **فَهَلَكَ فِي يَدِهِ فِي الْمُدَّةِ** بيا د خيار په موده كې دننه دا د بائع په قبضه كې هلاك شو **هَلَكَ مِنْ مَالِ الْبَائِعِ** نودا د بائع د مال نه هلاك شو. **لِارْتِفَاعِ الْقَبْضِ بِالرَّدِّ** ځكه بائع ته په واپس وركولو كې د مشترى قبضه ختمه شوه **لِعَدَمِ الْمِلْكِ عِنْدَهُ** ځكه چې د امام صاحب په نيز مشترى نه وو مالك شوې.

**حل اللغة:** ① **قبض**،قبض كړى ② **الارتفاع**،پوره كيدل، ③ **عدم**،نشتوالې ④ **الوديعة**،امانت

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه د مشترى د خيار په صورت كې مشترى د بائع په اجازت سره په مبيع قبضه اوكړله.بيا ئې دا د بائع سره امانت كيخودلو.نو مبيع په موده د خيار كې يا د خيار د مودې نه روسته د بائع په قبضه كې هلاك شو.نود حضرت امام ابوحنيفه په نيز به بيع باطل وي.اودا مال د بائع هلاك شو.نو په مشترى به ثمن يا قيمت هيڅ واجب نه وي.دليل دادې.چه د خيار په وجه مشترى خو مالك شوې نه وو.صرف قبضه ئې كړې وه.خو چې كله مبيع بائع ارخ ته د امانت په طور واپس كړې شو.نود مشترى د مبيع نه قبضه هم ختمه شوه.نو اوس ګويا مبيع د بائع د ملك او دده د قبضې نه هلاك شو.او هركله چې مبيع د بائع د قبضه او دده د ملك نه ضائع شى.نو بيع باطليږى. او په مشترى باندې هيڅ نه واجبيږى.په دې وجه به په دې صورت كې هم بيع باطل وى.او په مشترى به هيڅ واجب نه وي.

**وَعِنْدَهُمَا مِنْ مَالِ الْمُشْتَرِي** اود صاحبينو په نيز دمشترى د مال نه هلاك شو **لِصِحَّةِ الْإِيدَاعِ بِاعْتِبَارِ قِيَامِ الْمِلْكِ** ځكه چې (د مشترى دپاره) د ملك ثابتولو اعتبار كاوه سره ددې امانت ايخودل صحيح وو.

**تشريح:-** اود صاحبينو په نيز به دا مبيع د مشترى د مال نه هلاك وي.ځكه چې د صاحبينو په نيز د



مشترى دخيار په صورت كې په مبيع باندې د مشترى ملك ثابتيږى.او هركله چې د مشترى ملك ثابت شو.نود مشترى مبيع امانت ايخودل،تيك شو.اود مبيع د مودع (بائع) د قبضه نه هلاكيدل،د مودع (مشترى) د قبضه نه د هلاكيدلو مشابه شو.او مبيع كه د مشترى د قبضې نه هلاك شوې وو.نو بيع به نافذ وه.او په مشترى به ثمن واجب وو.نو په دې صورت كې به هم بيع نافذ وي.اوپه مشترى به ثمن واجب وي.

**شپږم مثال**

**وَمِنْهَا** او من جمله ددې نه يوه مسئله داده **لَوْ كَانَ الْمُشْتَرِي عَبْدًا مَأْذُونًا لَهُ** كه (د درې ورځو د خيار په شرط سره) اخستونكې څوك ماذون له غلام وي. **فَأَبْرَأَهُ الْبَائِعُ مِنَ الثَّمَنِ فِي الْمُدَّةِ** بيا د خيار په موده كې دننه بائع دې د ثمن نه برى كړو **بَقِيَ عَلَى خِيَارِهِ عِنْدَهُ** نود امام صاحب په نيز دده خيار پاته دې **لِأَنَّ الرَّدَّ امْتِنَاعٌ عَنِ التَّمَلُّكِ** ځكه چې واپس كول د مالك جوړيدلو نه منع كيدل دى **وَالْمَأْذُونُ لَهُ يَلِيهِ** او غلام ماذون له دده ولى دې.

**حل اللغة:** ① **الابراء**،برى كول، ② **الخيار**،اختيار ③ **الامتناع**،منع كيدل، ④ **التملك**،مالك جوړول

**تشريح:-** ،، عبد ماذون له،، هغه غلام ته وائى.كوم غلام ته چې دده مالك د تجارت اجازت وركړې وى. صورت دمسئلې دادې.كه مشترى ،،غلام ماذون له،، وى.او ده ته درې ورځې خيار وى.بيا بائع دې د خيار په موده كې د ثمن نه برى كړلو.يعنى ثمن ئې معاف كړلو.نود حضرت امام ابوحنيفه په نيز دده خيار پاته دې.كه په خپل خيار سره بيع رد كړى.او مبيع واپس كول اوغواړى.نو واپس كولې شى.ځكه چې د امام صاحب په نيز ،،غلام ماذون له،، د مبيع مالك شوې نه دې.نو دده پخپل خيار سره مبيع واپس كول به د مبيع مالك جوړولو نه منع كيدل وى.او،، غلام ماذون له،، ته د څه شى مالك جوړولو نه د بندولو اختيار حاصل وى.په دې وجه كه دې بيع رد كړى.او مبيع واپس كول اوغواړى.نو هيڅ باك نشته.

**وَعِنْدَهُمَا بَطَلَ خِيَارُهُ** اود صاحبينو په نيز دده خيار باطل شو **لِأَنَّهُ لَمَّا مَلَكَهُ** ځكه چې غلام ماذون له كله د مبيع مالك شو **كَانَ تَمْلِيكًا بِغَيْرِ عِوَضٍ** نو دده د ارخه واپس كول د بائع د عوض نه بغير مالك كول شو **وَهُوَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ** حالانكه غلام ماذون له ددې اهل نه دې.

**حل اللغة:-** ① **بطل**،باطل شو، ② **الرد**،واپس كيدل، ③ **عوض**،بدله، ④ **اهل**،اهليت لرونكې

**تشريح:-** دصاحبينو په نيز دده خيار باطل شو.يعنى ،،غلام ماذون له،، پخپل خيار سره كه بيع فسخ كړى.او مبيع واپس كول اوغواړى.نو نشى واپس كولې.ځكه چې ددوى په نيز،، غلام ماذون له،، كوم چې مشترى دې.د مبيع مالك دې.نو اوس دده مبيع بائع ارخ ته واپس كول،بائع د عوض نه بغير مالك كول دى.اود عوض نه بغير مالك كول تبرع ده.او،، غلام ماذون له،، د تبرع مجاز نه وى.په دې وجه به ده ته د مبيع واپس كاوه اختيار نه وى.او هركله چې د مبيع واپس كاوه اختيارنشته.نو دده خيار باطل شو.

**اووم مثال**

**وَمِنْهَا** او من جمله د هغې نه يوه مسئله داده **إِذَا اشْتَرَى ذِمِّيٌّ مِنْ ذِمِّيٍّ خَمْرًا عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ** چې هركله يو ذمى كافر د بل ذمى نه د خيار په شرط سره شراب واخستل **ثُمَّ أَسْلَمَ بَطَلَ الْخِيَارُ عِنْدَهُمَا** بيا مشترى مسلمان شو.نود صاحبينو په نيز دده خيار باطل شو **لِأَنَّهُ مَلَكَهَا** ځكه چې دې د شرابو مالك شو. **فَلَا يَمْلِكُ رَدَّهَا وَهُوَ مُسْلِمٌ** نودې به په حالت د اسلام كې د شراب واپس كاوه مالك نه وي.

**حل اللغة:** ① **خمر**،شراب، ② **يملك**،مالك كيږى، ③ **الاسقاط**،ساقط كول، ④ **يبطل**،باطليږى

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.كه يو ذمى كافر د بل ذمى كافر نه د خيار په شرط سره شراب واخستل بيا مشترى د خيار په موده كې مسلمان شو.نود صاحبينو په نيزمشترى د خيار په موده كې د مبيع مالك كيږى.په دې وجه ذمى مشترى د خيار په موده كې د شراب مالك شو.اوس د مسلمان كيدلو نه روسته كه دې

دخپل خيار په وجه شراب ( مبيع ) بائع ته واپس كول اوغواړي.نو نشي واپس كولې.ځكه چې اسلام د خمر د تمليك لپاره مانع دى.يعنى مسلمان څوك د شرابو مالك نشي جوړولې.

وَعِنْدَهُ يَبْطُلُ الْبَيْعُ اود امام صاحب رحمه الله په نيز بيع باطل شوه لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهَا ځكه چې مشترى د شرابو مالك نه دې فَلَا يَمْلِكُهَا بِإِسْقَاطِ الْخِيَارِ بَعْدَهُ وَهُوَ مُسْلِمٌ نو خيار ساقطولو سره به د اسلام په حالت كې هم ددې مالك نه وى.

تشريح:- اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دسره بيع باطل شوه.ځكه چې مشترى د خيار په موده كې د شراب دسره مالك شوې نه وو.او اوس دمسلمانيدلو نه روسته كه خيارساقط كړى.او مالك جوړيدل اوغواړي نونشي جوړيدلې.ځكه چې اسلام دخمردتملك نه مانع دې.يعنى مسلمان دخمر مالك نشي جوړيدلې.

## په موده د خيار كښې د ..من له الخيار..قبلول او ردكول

قَالَ وَمَنْ شُرِطَ لَهُ الْخِيَارُ قدورى رحمه الله فرمائى.چه د كوم كس لپاره د خيارشرط وى فَلَهُ أَنْ يَفْسَخَ فِي الْمُدَّةِ نوده ته اختيار دې.چه دې د خيار په موده كې بيع فسخ كړى وَلَهُ أَنْ يُجِيزَ اوده ته د اجازت وركاوه هم اختيار دې. فَإِنْ أَجَازَهُ بِغَيْرِ حَضْرَةِ صَاحِبِهَا نوكه ده دخپل انډيوالان په غير موجودګئ كې اجازت وركړو جَازَ نو جائز دى وَإِنْ فَسَخَ لَمْ يَجُزْ اوكه فسخ ئې كړه.نوجائز نه دى إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْآخَرُ حَاضِرًا مګر دا چې دوهم كس موجود وى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ (دا) د امام ابوحنيفه اود امام محمد رحمهما الله په نيز دى.

حل اللغة:① يفسخ،فسخ كوى،② اجاز،اجازت وركړو،③ حضرة،موجودګى،④ صاحب،ملګرې

تشريح:- په متن كې د «حضرة» ،،موجودكيدلو،،نه كناية علم ( پوهيدل)مراد دى.صورت د مسئلې دادې.چې كوم كس ته خيار حاصل وى.( كه هغه بائع وى.اوكه مشترى وى) دخيار په موده كې ده ته د بيع فسخ كولوهم اختيارشته.اود جائز كاوه اختيار هم شته.نوكه ده د خپل انډيوالان د علم نه بغير بيع جائز كړله.د كوم لپاره چې خيارنشته.نودا اجازت وركول بالاتفاق صحيح دې.يعنى بيع به جائز اولازم وى.خوكه د خپل انډيوالان د علم نه بغير ئې بيع فسخ كړله.نود طرفينو رحمهما الله په نيز دا بيع فسخ كول جائز نه دى.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يَجُوزُ[1] او ابويوسف رحمه الله فرمائى.چه جائز ده وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ اوهم دا د امام شافعى رحمه الله قول دې. وَالشَّرْطُ هُوَ الْعِلْمُ،او شرط د فسخ علم دې وَإِنَّمَا كَنَّى بِالْحَضْرَةِ عَنْهُ اود حاضريدلو نه كناية د فسخ علم مراد اخستې شوې دې.

تشريح:- په ذكر شوې صورت كې اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائى.چه فسخ كول هم جائز دى.هم دا قول د امام شافعى، امام مالك،اود امام احمد رحمهم الله دې.

لَهُ ابويوسف رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ مُسَلَّطٌ عَلَى الْفَسْخِ مِنْ جِهَةِ صَاحِبِهِ چې چاته اختيار دې.دې دخپل انډيوالان دارخه په فسخ باندې مسلط دې فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى عِلْمِهِ كَالْإِجَازَةِ په دې وجه د اجازت پشان فسخ كول هم دده په علم باندې موقوف نه وى وَلِهَذَا لَا يُشْتَرَطُ رِضَاهُ په دې وجه دده رضامندى شرط نه ده وَصَارَ كَالْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ اودا د بيع د وكيل پشان شو.

حل اللغة:① مسلط،مقررشوې،② الجهة،طرف\اړخ،③ الرضا،رضامندى،④ البيع،خرڅول

تشريح:- دحضرت امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه ده ته خيارحاصل دې.ده ته د خپل انډيوالان يعنى د ،،من لا خيارله،، د اړخه د بيع فسخ كاوه قدرت حاصل دې.او هرهغه كس چې ده ته د خپل انډيوالان د اړخه قدرت

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا فى فتح القدير(٥١٢١٥) وردالمحتار(٤١١٤٦) وتبيين (١٨١٤) نقلاً عن القول الراجح (١٧١٢)-



حاصل وى.دده فعل دده د انډيوالان په علم باندې موقوف نه وى.لكه څنګه چې د،، من له الخيار،،اجازت دده د انډيوالان يعنى د،،من لاخيار له،،په علم باندې موقوف نه دې.نو هم دغه ډول د،، من له الخيار،،فسخ كول هم دده د انډيوالان په علم باندې موقوف نه دې.اود،، من له الخيار،، فعل چونكه دده د انډيوالان په علم باندې موقوف نه وى.په دې وجه په فسخ كې د،، من لا خيارله،، رضامندى شرط نه ده.اودا د وكيل بالبيع پشان شو.يعنى كوم كس چې د بيع لپاره وكيل شو.دې په دې شئ كې هرقسمه تصرف كولې شى.په كوم څيز كې چې وكيل شوې وى.اګرچه موكل موجود نه وى.او ده ته علم نه وى.ځكه چې وكيل ته د موكل دارخه پوره پوره قدرت حاصل دې.دغه ډول ،، من له الخيار،، ته د،، من لا خيارله،، د اړخه چونكه د بيع فسخ كولو.اود نافذ كاوه قدرت حاصل دې.په دې وجه ده ته هم د،، من لا خيارله،، خبرولو هيڅ اړتيا نشته.كه بيع نافذ كړى.او كه فسخ كړى.

وَلَهُمَا اود طرفينو رحمهما الله دليل دادې أَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي حَقِّ الْغَيْرِ وَهُوَ الْعَقْدُ بِالرَّفْعِ چې فسخ د غير په حق كې دده حق يعنى د عقد پورته كاوه تصرف دې وَلَا يَعْرَى عَنِ الْمَضَرَّةِ؛ اودا د ضرر نه خالي نه دې لِأَنَّهُ عَسَاهُ يَعْتَمِدُ تَمَامَ الْبَيْعِ السَّابِقِ ځكه ممكن ده.چه ده د تيرې شوې بيع پوره كيدلو اعتماد كړې وى فَيَتَصَرَّفُ فِيهِ نو دې په مبيع كې تصرف اوكړى فَتَلْزَمُهُ غَرَامَةُ الْقِيمَةِ بِالْهَلَاكِ فِيمَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ، نو په دې صورت كې چې كله خيار د بائع لپاره وى.د مبيع هلاكيدلو په وجه په ده باندې د قيمت تاوان لازم وى. أَوْلَا يَطْلُبُ لِسِلْعَتِهِ مُشْتَرِيًا فِيمَا يا به دې د خپل سامان لپاره مشترى نه لټون كوى إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْمُشْتَرِي،په دې صورت كې چې كله خيار مشترى لپاره وى وَهَذَا نَوْعُ ضَرَرٍ اودا يو ډول ضرر دې فَيَتَوَقَّفُ عَلَى عِلْمِهِ په دې وجه فسخ كول به دده په علم باندې موقوف وى وَصَارَ كَعَزْلِ الْوَكِيلِ نودا د وكيل معزول كاوه پشان شو.

حل اللغة:① الرفع،ختميدل،② تمام،پوره والې،③ الغرامة،تاوان،④ السلعة،سامان⑤ ضرر، نقصان ، تكليف ⑤،العزل،معزوله كول،⑥ يتوقف،موقوف كيږى،⑦ يعرى،خالى كيږى

تشريح:- دطرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه د،، من له الخيار،، خپل اختيار لاندې بيع فسخ كول.د،،من لا له الخيار،، په حق كې تصرف دې.او هغه حق عقدبيع دې.يعنى د كوم لپاره چې شرط خيارنشته.په هغې كې عقد بيع لازم دې.او بيع فسخ كول دا حق ختمول،او باطلول دى.اودا د ضرر نه هم خالى نه دې.يعنى په فسخ كولوكې د،،من لا له الخيار،، لپاره ضرردې.په دې طريقه چې خيار كه د بائع لپاره وى.نو ډير خله دده انډيوال (ملګرى) يعنى مشترى د بيع تمام كيدل،او نافذ كاوه باندې اعتماد كوى.او په مبيع كې تصرف كوى.او ددې تصرف په نتيجه كې مبيع هلاكيږى.نو په دې صورت كې په مشترى باندې قيمت واجبيږى.او قيمت كله د ثمن نه زيات وى.او په مشترى باندې د ثمن نه زيات واجبول د مشترى په حق كې ښكاره ضرر دې.او كه خيار د مشترى لپاره وى.نو بائع د عقدبيع تماميدلو باندې اعتماد كوى.اود خپل دې سامان لپاره بل څوك مشترى نه لټون كوى.حالانكه كله هم دا موده د سامان د خرڅولو وى.نودا د بائع په حق كې ضرر دې.بهرحال د،، من له الخيار،، د خپل انډيوالان د علم نه بغير بيع فسخ كول،دده د انډيوالان په حق كې ضرراود نقصان سبب دې.او داسې كار كول،چه په هغې كې د بل نقصان وى.بغير د هغه د علم نه جائز نه وى.په دې وجه د،، من له الخيار،، بيع فسخ كول.د،، من له الخيار،، په علم باندې موقوف دې.يعنى كه پخپل اختيار سره ئې د بيع فسخ كاوه اراده اوكړله.نو خپل انډيوال (ملګرى) به خبروى.او بيع به فسخ كوى.چه دې د پيښيدونكى ضرر نه خپل ځان بچ كړى.او ددې مثال داسې دې.لكه مثلا وكيل معزول كول.يعنى كه يوكس څوك سړې په اخستلو خرڅولو باندې وكيل كړى.بيا دې معزول كول اوغواړي.نود وكيل معزول كاوه لپاره ضرورى دى.چه موكل دې خبر كړى.ګنى ډير خله به موكل دې معزول كړى.حالانكه د معزول كيدلو د علم نه كيدلو په وجه به دې اخستل خرڅول كوى.نو په وكيل به هسې بيسه تاوان لازم شى.يعنى كه وكيل بالشراء وى.نو ده له به ثمن وركول ضرورى وى.نو لكه څنګه چې د وكيل معزول كاوه

لپاره وکیل ته اطلاع ورکول ضروري دي. دغه ډول د بیع فسخ کاوه لپاره هم دوهم ملګري، یعني ،، من لا له الخیار،، خبرول هم ضروري دي.

**بِخِلَافِ الْإِجَازَةِ** په خلاف د اجازت **لِأَنَّهُ لَا إِلْزَامَ فِيهِ،** ځکه چې په اجازت کې هیڅ الزام نه وي **وَلَا نَقُولُ أَنَّهُ مُسَلَّطٌ** او موږ نه وایو چه چاته خیار دي، هغه مسلط دي **وَكَيْفَ يُقَالُ ذَٰلِكَ** اودا څنګه ونیلې کیداې شي **وَصَاحِبُهُ لَا يَمْلِكُ الْفَسْخَ** حالانکه دده اندیوال (ملګرې) پخپله د فسخ کول مالك نه دې **وَلَا تَسْلِيطَ فِي غَيْرِ مَا يَمْلِكُهُ الْمُسَلِّطُ** اود مسلط په غیرمملوکه شئ کې تسلیط نه کیږي.

**حل اللغة:** ① **الالزام**،لازمول، ② **مسلط**،مقررشوې، ③ **یملك**،مالك کیږي، ④ **الفسخ**،ختمیدل

**تشریح:** - په خلاف د ،، من له الخیار،، د اجازت. ځکه چې د ،، من له الخیار،، اجازت ورکاوه په صورت کې ،،د،، من لا له الخیار،، په حق کې هیڅ ضرر او نقصان نه لازمیږي. ځکه چې د ،، من لا خیار له،، په حق کې وړاندې نه بیع لازم شوې ده. او من له الخیار هم د بیع اجازت ورکاوه سره بیع لازم کړې ده. په دې وجه به اجازت د ،، من لا له الخیار،، په علم باندې موقوف نه وي.

دامام ابویوسف رحمه الله ددلیل په ځواب کې صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي. چه د امام ابویوسف رحمه الله دا ونیل چه ،،من له الخیار،، ته د بیع فسخ کاوه قدرت د ،، من لا له الخیار،، د اړخه حاصل دي. غلط دی. ځکه چه ،، من لا له الخیار،، دبیع فسخ کاوه پخپله هم مالك نه دې. او سړې چې دکوم شئ پخپله مالك نه وي. هغه بل کس ددې ځنګه مالك جوړولې شي. نو ثابته شوه چه ،، من له الخیار،، ته د ،، من لا له الخیار،، داړخه د فسخ وغیره کاوه هیڅ قدرت حاصل شوې نه دې.

**وَلَوْ كَانَ فَسَخَ فِي حَالِ غَيْبَةِ صَاحِبِهِ** اوکه فسخ دده د اندیوال په غیرموجودګئ کې اوشوه **وَبَلَغَهُ فِي الْمُدَّةِ** اوده ته په موده د خیارکې خبر اورسیدلو **تَمَّ الْفَسْخُ لِحُصُولِ الْعِلْمِ بِهِ** نو فسخ پوره شوه. ځکه چې د فسخ علم اوشو.

**حل اللغة:** ① **غیبة**،غیرموجودګی، ② **بلوغ**،رسیدل، ③ **المضی**،تیریدل، ④ **حصول**،حاصلیدل

**تشریح:** - صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي. که ،، من له الخیار،، د ،، من لا له الخیار،، د خبر ورکاوه نه بغیر بیع فسخ کړله او د خیار په موده کې ده ته اطلاع ملاؤ شوه. نو د بیع فسخ کول پوره شو. ځکه چې د خیار په موده کې دننه ،،من لا له الخیار،، ته د بیع فسخ کاوه خبر رسیدلې دي. اوهم دا مقصود وو.

**وَلَوْ بَلَغَهُ بَعْدَ مُضِيِّ الْمُدَّةِ** اوکه د مودې تیریدلو نه روسته خبر اورسیدلو **تَمَّ الْعَقْدُ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ قَبْلَ الْفَسْخِ** نو. فسخ کاوه نه وړاندې د مودې تیریدلو په وجه عقد پوره شو.

**تشریح:** - خو که دخیار موده تیریدلو نه روسته ده ته خبر اورسیدلو. نو د فسخ کاوه نه وړاندې د خیار موده تیریدلو په وجه عقد بیع پوره شوې دي. ځکه چې د فسخ کاوه نه بغیر د خیار موده تیریدلو په وجه هم بیع پوره کیږي.

### په وفات سره د ،،من له الخیار،، د خیار حکم

**قَالَ وَإِذَا مَاتَ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ** فرمائي چه کله هغه کس مړشو. چا لپاره چې خیار شرط وو **بَطَلَ خِيَارُهُ** نو دده خیار باطل شو **وَلَمْ يَنْتَقِلْ إِلَىٰ وَرَثَتِهِ** او دده وارثانو اړخ ته نه منتقل کیږي.

**حل اللغة:** ① **مات**،مړشو، ② **ینتقل**،منتقل کیږي، ③ **ورثة**،جمع د وارث، ④ **خیار**،اختیار

**تشریح:** - زموږ په نیز په خیارشرط کې وراثت نه جاري کیږي. مثلاً که هغه کس مړشو. د کوم کس لپاره چې خیار وو نو دده خیار باطل شو. وارثانو اړخ ته نه منتقل کیږي. خیار که د بائع لپاره وي. او که د مشتري لپاره وي. یا ددې دواړو نه د علاوه لپاره وي. اوکه دده اندیوال یعني که ،، من لا له الخیار،، مړشو. نو د ،، من له الخیار،، خیارشرط به پاته وي.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُورَثُ عَنْهُ،** او امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه دده څخه به د وراثت په طور منتقل کیږي **لِأَنَّهُ حَقٌّ لَازِمٌ ثَابِتٌ**



**فِي الْبَيْعِ** ځکه چې خیار شرط په بیع کې یو لازم او ثابت حق دې **فَيَجْرِي فِيهِ الْإِرْثُ** په دې وجه به په دې کې میراث جاري کیږي **كَخِيَارِ الْعَيْبِ وَالتَّعْيِينِ** لکه (څنګه) چې په خیار عیب او خیارتعین کې دی.

**تشریح:** - اودامام شافعي رحمه الله په نیز په ذکر شوې صورت کې وراثت جاري کیږي. یعني د ،، من له الخیار،، د مرګ نه روسته دده وراثانو اړخ ته خیارمنتقل کیږي. حضرت امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دلیله** ⊛ خیارشرط د انسان داسې حق دې. کوم چې شرعاً ثابت دې. او انسان د دې د ثابت ساتلو. اود ساقطولو دواړه مالك دې. یعني انسان ته دا هم اختیار شته. چه دې په عقدبیع کې خپل ځان لپاره خیارشرط مقررکړي. اودا اختیار هم شته. چه د خیارشرط اونکړي. بلکه دا ساقط کړي. اومطلق بیع اوکړي. اودا حق لازم هم دې. که صاحب خیار دا باطلول اوغواړي. نو نشي باطلولې. یعني که انسان دا اووائي. چه په عقدبیع کې خیارشرط باطل شو. اوس د هیڅ یو کس لپاره خیارشرط ټیك نه دې. نوداسې نشي کیدلې. بلکه داکار د انسان د قدرت نه بهر دې. بهرحال خیارشرط په بیع کې د انسان داسې حق دې. چه لازم هم دې. او ثابت هم دې. او داسې حق چې لازم هم وي. او ثابت هم وي. په هغې کې میراث جاري کیږي. په دې وجه په خیارشرط کې میراث جاري کیږي. لکه څنګه چې په خیار عیب اوخیار تعین کې میراث جاري کیږي. د خیارعیب صورت خو دادې. چه یوکس یوڅیز واخستلو او مړشو بیا په دې کې څه عیب اوموندې شو. نو دده وارث ته د عیب په وجه د مبیع واپس کاوه یا د نقصان اخستلو اختیار شته دې. اود خیارتعین صورت دادې. چه یوسړې په دوې (دوه) غلامانوکې یو غلام په دې شرط باندې واخستلو چه د متعین کولو حق ده ته دې. بیا د متعین کاوه نه وړاندې مړشو. نودده وارث ته به د متعین کاوه اختیار حاصل وي. دغه ډول په خیارشرط کې هم د ،، من له الخیار،، د مرګ نه روسته دده وارث ته اختیار وي.

**وَلَنَا أَنَّ الْخِيَارَ لَيْسَ إِلَّا مَشِيئَةً وَإِرَادَةً** زموږ دلیل دادې. چه خیار د خواهش او ارادې نه علاوه بل څه څیزنه دې **وَلَا يُتَصَوَّرُ انْتِقَالُهُ،** او ددې منتقل کیدل نه متصور کیږي **وَالْإِرْثُ فِيمَا يَقْبَلُ الْاِنْتِقَالَ** او وراثت خو په هغه څیزونوکې (جاري) کیږي. کوم چې منتقل کیدل قبول کړي.

**حل اللغة:** ① **المشیئة**،خوښه، ② **استحق**،حقدارجوړشو، ③ **السلیم**،بې عیبه، ④ **المورث**،چانه چې میراث اوړې شی

**تشریح:** - زموږ دلیل دادې. چه خیار د مشیت او ارادې نوم دې. او دا دواړه عرض دی. اوکوم شئ چې د عرض د قبیلې نه وي. هغه انتقال نه قبلوي. حالانکه میراث په هغه څیزونوکې جاري کیږي. کوم چې انتقال قبلوي. نو ثابته شوه. چه په خیارکې دننه میراث نه جاري کیږي. په خلاف د خیارعیب.

**بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ** په خلاف دخیار عیب **لِأَنَّ الْمُوَرِّثَ اسْتَحَقَّ الْمَبِيعَ سَلِيمًا،** ځکه چې مورث د بې عیب مبیع مستحق شوې وو **فَكَذَا الْوَارِثُ** نو وارث به هم دغه ډول (مستحق وي).

**تشریح:** - په دې عبارت سره د امام شافعي رحمه الله د قیاس ځواب نه کوي چې خیارعیب د میراث په طوردمورث (مړي) نه وارث اړخ ته نه منتقل کیږي. بلکه دعقد بیع په وجه مورث د داسې مبیع مستحق کیږي. کوم چې بې عیبه وو. خو کله چې دې مړشي. نو دده وراث به هم د بې عیبه مبیع مستحق وي. اوس که مبیع عیب داره وي. نو وراث ئې واپس کولې شي. نو وارث لپاره د مبیع واپس کاوه اختیار په دې بنا (بنیاد) دې.

**فَأَمَّا نَفْسُ الْخِيَارِ لَا يُورَثُ،** او پاتې شو نفس خیار، نو په دې کې میراث نه جاري کیږي **وَأَمَّا خِيَارُ التَّعْيِينِ يَثْبُتُ لِلْوَارِثِ ابْتِدَاءً** او خیار تعین د وارث لپاره ابتداءً ثابتیږي **لِاخْتِلَاطِ مِلْكِهِ بِمِلْكِ الْغَيْرِ** ځکه چې د وارث ملك د غیرملك سره مخلوط شوې دي **لَا أَنْ يُورَثَ الْخِيَارُ** دا نه چې وارث په میراث کې خیار تعین وارث کیږي.

**حل اللغة:** ① **لایورث**،نه جاري کیږي، ② **التعیین**،معین کول، ③ **الابتداء**،اول \ شروع، ④ **الاختلاط**،ګډوډ کیدل

**تشریح:** - نفس خیارعیب وارث اړخ ته نه دې منتقل شوې. بلکه خیار خود مورث په مرګ سره ساقط شو. خو چونکه

وارث، د وارث په حیثیت سره د مبیع مالك شو. او مبیع د غیرمبیع سره د مخلوط کیدلو په وجه مجهول دی. په دې وجه به خیارتعین دده لپاره ثابت وی. حاصل داچه د وارث لپاره کوم خیار تعین ثابت دی. هغه د هغه نه علاوه دی. کوم چې د مورث لپاره ثابت وو. چه په دواړو کې توپیر دی. په دې طریقه چې د مورث لپاره خیارفسخ هم وو. اودهغه خیار د درې ورځو سره موقت وو. اود وارث لپاره نه خیارفسخ حاصل دی. اونه دده خیار موقت دی.)

**د مشتری اود غیر په خیارشرط سره د نفاذ اود فسخ حکم**

قَالَ وَمَنِ اشْتَرٰى شَيْئًا په جامع صغیر کې امام محمد رحمه الله فرمائي. چاچه څه شئ واخستلو وَشَرَطَ الْخِيَارَ لِغَيْرِهٖ نو په دواړوکې که هریو کس د بیع اجازت ورکړو. نو بیع به جائز وی فَأَيُّهُمَا أَجَازَ الْخِيَارَ وَأَيُّهُمَا نَقَضَ انْتَقَضَ.(١) اوپه دواړوکې چاهم بیع ماته کړله. نو بیع به ماته وی.

**حل اللغة:** ① انتقض، ماتیږی، ② الاشتراط، شرط لګول، ③ مواجب، جمع د موجب، لازمونکې

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې چه یو سړی یو شئ واخستلو. اود درې ورځو د خیارشرط ئې د ځان نه علاوه دبل کس لپاره اولګولو. نوپه مشتری او غیر دواړوکې چې چا هم د بیع اجازت ورکړو. بیع به جائز وی. اوچا چې بیع فسخ کړله بیع به فسخ وی. حاصل داچه خیارشرط د مشتری او دده نه غیر دواړو لپاره ثابت دې. او په خیار سره په دواړو کې هر یو کس ته د تصرف اختیارشته.

وَأَصْلُ هٰذَا او ددې اصل دادې أَنَّ اشْتِرَاطَ الْخِيَارِ لِغَيْرِهٖ جَائِزٌ اسْتِحْسَانًا چې د( بائع او مشتری نه) علاوه لپاره دخیار شرط لګول استحساناً جائز دی.

**تشریح:-** صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي. اصل خبره داده. چه د غیرعاقد لپاره دخیارشرط لګول استحساناً جائز دی.

وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوْزُ اود قیاس مطابق جائز نه دی وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ اوهم دا د امام زفر رحمه الله قول دی لِأَنَّ الْخِيَارَ مِنْ مَوَاجِبِ الْعَقْدِ وَأَحْكَامِهٖ ځکه چې خیار د عقد بیع د لوازمو او احکاماتو څخه دی فَلَا يَجُوْزُ اشْتِرَاطُهٗ لِغَيْرِهٖ په دې وجه به د غیر لپاره ددې شرط لګول جائز نه وی كَاشْتِرَاطِ الثَّمَنِ عَلٰى غَيْرِ الْمُشْتَرِيْ لکه څنګه چې په غیرمشتری باندې د ثمن شرط لګول جائز نه دی.

**تشریح:-** خو قیاسا جائز نه دی. هم دا د امام زفر رحمه الله قول دی. وجه د قیاس داده. چه په عقدبیع کې هرکله د خیارشرط اولګولې شو. نو خیارعقد د بیع د لوازمو اوددې د احکامو څخه شو. او کوم شئ چې د عقدبیع د لوازمو اود احکامو څخه وی. ددې په غیر عاقد باندې شرط لګول جائز نه وی. لکه څنګه چې په غیر مشتری باندې د ثمن شرط لګول جائز نه دی. نوهم دغه ډول دغیر عاقد لپاره هم د خیارشرط لګول جائز نه دی.

وَلَنَا او زمونږ دلیل دادې أَنَّ الْخِيَارَ لِغَيْرِ الْعَاقِدِ لَا يَثْبُتُ چې د غیرعاقد لپاره خیار نه ثابتیږی إِلَّا بِطَرِيْقِ النِّيَابَةِ عَنِ الْعَاقِدِ خوکه د عاقد نائب جوړشی فَيُقَدَّرُ الْخِيَارُ لَهٗ اقْتِضَاءً نود عاقد لپاره به هم خیار اقتضاءً مقدر منلې کیږی ثُمَّ يُجْعَلُ هُوَ نَائِبًا عَنْهُ تَصْحِيْحًا لِتَصَرُّفِهٖ بیا به غیرسړې دده نائب جوړولې شی. چه د عاقد تصرف صحیح وی.

**حل اللغة:** ① النیابة، نائب کیدل ② یقدر، مقدر منلې شی، ③ تصحیح، صحیح کول، ④ العاقد، معامله کونکې

**تشریح:-** زمونږ دلیل یعنی وجه د استحسان داده. چه په عقدبیع کې د غیرعاقد لپاره دخیارشرط لګولو حاجت متحقق دی. په دې طریقه چې غیرعاقد یعنی اجنبی د مبیع یا د عقدبیع په اړه کې زیات معلومات لری. نو ددې اړتیا په وجه د غیرعاقد لپاره خیارشرط مشروع کړې شو. لکه څنګه چې نفس خیارد اړتیا په وجه مشروع شوې دی. نود غیرعاقد لپاره چې د خیار کوم شرط لګولې شوې دې. هغه به یا اصالةً وی. یا به نیابةً وی. اول خو باطل

(١) القول الراجح فی مسئلة المتن هو هذا قول الجمهور رحمهم الله كذا فی فتح القدير(٥١٦\٥) وردالمحتار(٦٤\١٤) نقلاً عن القول الراجح (١٨\١٢)_



دی ځکه چې د غیرعاقد لپاره اصالةً د خیارثابتولو هیڅ وجه نشته. البته دوهم احتمال ټیك دی. یعنی د غیرعاقد لپاره ثبوت د خیار نیابةً ثابت دی. په دې طریقه چې عاقد اول خپل ځان لپاره د خیارشرط اولګولو. بیا ئې د اجنبی یعنی غیرعاقد نې په تصرف کې خپل نائب مقررکړلو. اودا ئې په دې وجه اوکړل. چه د عاقد تصرف د امکان په اندازه صحیح شی.

وَعِنْدَ ذٰلِكَ يَكُوْنُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْخِيَارُ، او په دې تقدیر به په دواړوکې د هریو کس لپاره خیار وی فَأَيُّهُمَا أَجَازَ نو په دواړوکې چې کوم یو کس اجازت ورکړو جَازَ نو بیع به جائز وی وَأَيُّهُمَا نَقَضَ انْتَقَضَ اوکوم کس چې بیع ماته کړله. بیع به ماتیږی.

**تشریح:-** بهرحال هرکله چې خیارشرط د مشتری او اجنبی دواړو لپاره ثابت دې. نو په دواړوکې چې کوم کس هم د بیع اجازت ورکړو. بیع به جائز وی. اوکوم کس هم چې بیع فسخ کړله. بیع به فسخ وی.

وَلَوْ أَجَازَ أَحَدُهُمَا او که په دې دواړوکې یوکس اجازت ورکړو وَفَسَخَ الْآخَرُ او دوهم فسخ کړو يُعْتَبَرُ السَّابِقُ نو وړاندینې به معتبر وی لِوُجُوْدِهٖ فِيْ زَمَانٍ ځکه چې دده قول په داسې زمانه کې وو لَا يُزَاحِمُهٗ فِيْهِ غَيْرُهٗ چې په دې کې دده نه علاوه بل څوك دده مقابل نه وو.

**تشریح:-** اوکه ددواړو اقوال مختلف شو. یعنی یو کس بیع جائز کړله. او بل کس فسخ کړله. نود کوم کس قول چې ړومبې وی. دهغه اعتبار به کولې شی. ځکه چې د ړومبی قول په داسې موده کې وو. چه هغه وخت کوم بل ترل ددې مقابل نه وو. یعنی صرف هم ددې اجازت وو. یا فسخ وه. ددې په خلاف د بل کس قول موجود نه وو.

**په یو وخت د جانبینو د فسخ اود جواز صادرکیدلو حکم**

وَلَوْ خَرَجَ الْكَلَامَانِ مِنْهُمَا مَعًا اوکه د دواړو کلام په یوځائې اووتلو يُعْتَبَرُ تَصَرُّفُ الْعَاقِدِ فِيْ رِوَايَةٍ. نو په یو روایت کې دعقد کونکی تصرف معتبر دی وَتَصَرُّفُ الْفَاسِخِ فِيْ أُخْرٰى (١) او په دوهم روایت کې د فسخ کونکی تصرف معتبر دی.

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي. که د عاقد اود اجنبی دواړو کلام یوځائې صادرشو او په دوی کې یوکس بیع جائز کړله. او دوهم کس فسخ کړله. نو په دې کې دوې (دوه) روایتونه دی. دمبسوط د ،، کتاب البیوع ،، روایت خودا دی چه د عقدکونکی تصرف به معتبر وی. که دده د بیع اجازت ورکړې وی. اوکه فسخ کړې ئې وی. اود مبسوط د ،، کتاب الماذون ،، روایت دادې. چه د بیع فسخ کونکی تصرف به معتبر وی. فسخ کونکې که عاقد وی. او که اجنبی وی.

وَجْهُ الْأَوَّلِ د ړومبی روایت وجه داده. أَنَّ تَصَرُّفَ الْعَاقِدِ أَقْوٰى؛ چې د عقدکونکی تصرف زیات قوی دی لِأَنَّ النَّائِبَ يَسْتَفِيْدُ الْوِلَايَةَ مِنْهُ ځکه چې نائب د ولایت تصرف هم دده نه حاصل کړې دی.

**حل اللغة:-** ① اقوی، زیات مضبوط ② یستفید، حاصلوی ③ الولایة، تصرف ④ النائب نائب

**تشریح:-** د ړومبی روایت یعنی د ،، کتاب البیوع ،، روایت دلیل دادې. چه د عقدکونکی تصرف زیات قوی دی. ځکه چې نائب یعنی اجنبی د تصرف ولایت هم دده نه حاصل کړې دی. اود کوم کس نه چې ولایت د تصرف حاصل کړې شی. دهغه تصرف زیات قوی وی. نو ثابته شوه. چه د عاقد تصرف زیات قوی دی. او اقوی په غیراقوی باندې مقدم وی. په دې وجه به د عاقد تصرف مقدم او معتبر وی. که دده تصرف د اجازت په صورت کې وی. اوکه د فسخ په صورت کې وی.

(١) والقول الراجح فی هذه المسئلة هو هذا وهذا قول أبی یوسف رحمه الله كما يعلم من العبارة الآتية فی الهداية. كذا فی فتح القدير(٥١٨\٥) والكفاية (٥١٨\٥) والعناية (٥١٨\٥) والدرالمختار(٦٤\١٤) وردالمحتارأيضاً ) نقلاً عن القول الراجح (١٨\١٢)-

وَجْهُ الثَّانِي أَنَّ الْفَسْخَ أَقْوَى، او د دوهم روايت وجه داده. چه فسخ كول زيات قوى دى لِأَنَّ الْمُجَازَ يَلْحَقُهُ الْفَسْخُ خكه چې د كوم عقد اجازت وركړې شوى وى. هغې ته فسخ لاحق كيږى وَالْمَفْسُوخُ لَا تَلْحَقُهُ الْإِجَازَةُ، او كوم عقد چې فسخ كړې شو. هغه ته اجازت نه لاحق كيږى وَلَمَّا مَلَكَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا التَّصَرُّفَ او هركله چې په دې دواړوكې هريو كس د تصرف مالك وو رَجَّحْنَا بِحَالِ التَّصَرُّفِ نوموږ د تصرف حالت ته ترجيح وركړله.

تشريح:- د دوهم يعنى د،، كتاب الماذون،، روايت دليل دادې. چه عقد فسخ كول زيات قوى دى. خكه چې د كوم عقد اجازت وركړې شو. نود اجازت باوجود به بيع فسخ وى. خوچه كوم عقد فسخ شى. هغه جائز كيدلې نشى. مثلاً د،، من له الخيار،، د اجازت ور كاوه نه وړاندې ،، مبيع،، دبائع په قبضه كې هلاك شو. نود مبيع هلاكيدلو په وجه بيع فسخ شوه. اوس كه ،، من له الخيار،، اجازت وركړى. اودا جائز كول اوغواړى. نو جائز كولې نې نشى. ددې تفصيل نه معلومه شوه. چه فسخ په اجازت باندې راتلې شى. خو اجازت په فسخ باندې نشى راتلې. او كوم څيز چه په بل باندې راتګ ې شى. دا دهغې نه اقوى وى. په كوم چې دا راغلې وى. نو ثابته شوه. چه فسخ اقوى ده. دلته چونكه په عاقد او اجنبى دواړوكې هر يو د تصرف مالك دې. په دې وجه به په ترجيح كې د تصرف حالت معتبر وى. يعنى حالت اقوى چونكه فسخ كول دى. په دې وجه به دې ته ترجيح وى. اود فسخ كونكى تصرف به معتبر وى. فسخ كونكې كه عاقد وى. او كه غير عاقد وى.

وَقِيلَ الْأَوَّلُ قَوْلُ مُحَمَّدٍ او ونيلې شوى دى. چه رومبې روايت د امام محمد ؒ قول دې وَالثَّانِي قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ، او دوهم روايت د ابويوسف ؒ قول دې. وَاسْتِخْرَاجُ ذٰلِكَ مِمَّا او دا د هغه مسئلې نه راوْ ويستلې شو إِذَا بَاعَ الْوَكِيلُ مِنْ رَجُلٍ چه هركله وكيل د يوسړى په لاس خرڅ كړ وَالْمُوَكِّلُ مِنْ غَيْرِهِ مَعًا او موكل د دوهم كس په لاس خرڅ كړو. ( اود دواړو خرڅول) يوځائې ( واقع شو). فَمُحَمَّدٌ يَعْتَبِرُ فِيهِ تَصَرُّفَ الْمُوَكِّلِ نو امام محمد ؒ په دې كې د موكل تصرف له اعتبار وركوى وَأَبُو يُوسُفَ يَعْتَبِرُهُمَا او ابويوسف ؒ د دواړو تصرف له اعتبار وركوى

حل اللغة:- ① باع، خرڅ كړو ② رجل، سړې ③ يعتبر معتبر كوى ④ استخرج، راويستې شوې

تشريح:- علامه مرغينانى ؒ فرمائى. چه بعض مشائخ وائى. چه رومبې روايت د امام محمد ؒ قول دې. او دوهم روايت د امام ابويوسف ؒ قول دې. اودا اختلاف ددې مسئلې نه مستنبط شوې دې. چه وكيل بالبيع يوڅيز په يوكس باندې خرڅ كړلو. اوموكل په بل كس باندې خرڅ كړلو. نوامام محمد ؒ د موكل د تصرف اعتبار كوى. او په دې مسئله كې نې د موكل په تصرف اعتبار كړې دې. معلوميږى. چه په تيره شوې مسئله كې دعاقد د تصرف اعتبار كول هم د امام محمد ؒ قول دې. او امام ابويوسف ؒ د وكيل اوموكل د دواړو د تصرف اعتبار كوى. نو شئ مبيع به د دواړو مشترئينو په مينځ كې مشترك وى. اود صفقه د تفرق په وجه به دواړو مشترئينو ته اختيار وى. چه دوى بيع نافذ كړى يا فسخ كړى. د نفاذ په صورت كې به هريو كس نصف مبيع د نصف ثمن عوض اخلى. په دې مسئله كې امام ابويوسف چونكه د وكل اود موكل دواړو د تصرف اعتبار كوى. په دې وجه ددې نه معلوميږى. چه امام ابويوسف ؒ دمتصرفينو دحالاتو اعتبار نه دې كړې. خكه چې دوى دواړه برابر دى. بلكه د تصرف اعتبار نې كړې دې. نوپه دې مسئله كې د تصرف اعتبار كاوه نه معلوميږى. چه په تيره شوې مسئله كې د تصرف اعتبار كول د امام ابويوسف ؒ قول دې. حاصل داشو. چه اصل اختلاف خود توكيل په مسئله كې دې. خو ددې نه نې استنباط كړې دې. اوپه تيره مسئله كې هم ددې اختلاف انطباق شوې دې.

**يوځائې دوې (دوه) غلامان اخستلوكښې د يوغلام په اړه كښې د خيار حكم**

قَالَ وَمَنْ بَاعَ عَبْدَيْنِ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ ( په جامع صغير كې ) فرمائى. چاچه دوې (دوه) غلامان د زر درهمو په عوض په دې شرط باندې خرڅ كړل. عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ فِي أَحَدِهِمَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ چې مشترى ته په دې دواړو غلامانوكې په يو غلام كې د درې ورځو پورې خيار دې فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده.



تشريح:- صورت د مسئلې دادې. چه يوسړى دوې (دوه) غلامان د زرو روپو په عوض په دې شرط باندې خرڅ كړل. چې مشترى ته به په دې دواړوغلامانوكې په يو غلام كې د درې ورځو خيار وى. نو په دې صورت كې بيع فاسد ده.

وَإِنْ بَاعَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِخَمْسِمِائَةٍ اوكه په دې دواړوكې هريو د پنځه روپو په عوض خرڅ كړو عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ فِي أَحَدِهِمَا بِعَيْنِهِ په دې شرط چې په دې كې د يومتعين غلام اختيار دې جَازَ الْبَيْعُ نو بيع جائز ده.

تشريح:- اوكه دواړو غلامانوكې هر يو غلام د پنځه سوه درهمو په عوض په دې شرط خرڅ كړى. چه مشترى ته به په دې دواړوكې په يومتعين غلام كې خياروى. نو په دې صورت كې بيع جائز ده.

وَالْمَسْأَلَةُ عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ: دا مسئله په څلور صورتونو باندې ده أَحَدُهَا أَنْ لَا يُفَصِّلَ الثَّمَنَ رومبې (صورت) داچه د ثمن تفصيل نه وى وَلَا يُعَيِّنَ الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ اونه هغه غلام متعين وى. په كوم كې چې خيار دې وَهُوَ الْوَجْهُ الْأَوَّلُ فِي الْكِتَابِ اوهم دا په كتاب كې رومبې صورت دې.

حل اللغة:- ① يفصل،، تفصيل بيانوى ② الثمن،، قيمت ③ فن،، مطلق غلام ④ معين معلوم

تشريح:- علامه مرغينانى ؒ فرمائى. چه ددې مسئلې څلورصورتونه دى. يوخو دا دې. چه د دواړو غلامانو نه جلا جلا ثمن بيان كړې شو. اونه هغه غلام متيعن كړې شو. په كوم كې چې مشترى ته خيارحاصل دې. د متن رومبې مسئله هم داده.

وَفَسَادُهُ لِجَهَالَةِ الثَّمَنِ وَالْمَبِيعِ، او ددې فاسد كيدل خكه دى. چه ثمن او مبيع دواړه مجهول دى لِأَنَّ الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ خكه هغه غلام په كوم كې چې خيار دې. كَالْخَارِجِ عَنِ الْعَقْدِ، هغه ددې پشان دې. كوم چې د عقد نه خارج دې إِذِ الْعَقْدُ مَعَ الْخِيَارِ لَا يَنْعَقِدُ فِي حَقِّ الْحُكْمِ خكه چې كوم (غلام) په عقدخيار سره وى. هغه په حكم (د ملكيت حاصليدلو) په حق كې نه منعقد كيږى فَبَقِيَ الدَّاخِلُ فِيهِ أَحَدُهُمَا نو په عقدكې دواړوكې يو داخل شو وَهُوَ غَيْرُ مَعْلُومٍ حالانكه هغه غيرمعلوم دې.

تشريح:- په دې صورت كې بيع په دې وجه فاسد ده. چه په دې صورت كې مبيع اوثمن دواړه مجهول دى. مبيع خوخكه مجهول دې. چه په كوم غلام كې مشترى ته خيارشرط دې. هغه غلام د عقدبيع نه خارج دې. يعنى هغه غلام حكماً مبيع نه دې. خكه چې د مشترى د خيار په صورت كې مشترى د مبيع مالك نه دې. نو مشترى دهغه غلام مالك نشو. په كوم كې چې خيار دې. ګويا په دې غلام كې دملكيت حاصليدلو نه روسته دهغه په حق كې عقد منعقد نشو. په كوم چې مشترى ته خيار وو. نو په عقدبيع كې په دې دواړوكې يوغلام داخل شو. يعنى هغه غلام داخل شو. په كوم كې چې خيارنشته. او هغه غلام معلوم نه دې. نو ثابته شوه. چه مبيع مجهول دې. او چونكه د هريو جلا ثمن نه دې بيان شوې. په دې وجه ددې ثمن هم مجهول دې. او وړاندې تيرشوى دى. چه په مبيع اوثمن كې ديوجهالت بيع فاسدوى. نود دواړو جهالت به په درجه اولى بيع فاسدوى.

وَالْوَجْهُ الثَّانِي أَنْ يُفَصِّلَ الثَّمَنَ دوهم (صورت) داچه د هريو ثمن هم بيان كړى وَيُعَيِّنَ الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ وَهُوَ او هغه هم بيان كړى. كوم چې متعين دې. په كوم كې چې خيار دې الْمَذْكُورُ ثَانِيًا فِي الْكِتَابِ اوهم دا په كتاب كې په دوهم وار باندې ذكر دې.

تشريح:- دوهم صورت دادې. چه د دواړو غلامانو جلا جلا ثمن هم بيان كړې شو. او په كوم غلام كې چې خيارو. هغه هم متعين كړې شو. د متن دوهم مسئله هم دا ده.

وَإِنَّمَا جَازَ، لِأَنَّ الْمَبِيعَ مَعْلُومٌ اودا خكه جائز دې. چه مبيع هم معلوم دې وَالثَّمَنَ مَعْلُومٌ او ثمن هم معلوم دې

تشريح:- په دې صورت كې بيع خكه جائز ده. چه مبيع اوثمن دواړه معلوم دى. چه د مبيع كيدلو لپاره متعين دى. اوچونكه د هريو جلا جلا ثمن بيان كړې شوې دې. په دې وجه ددې ثمن هم معلوم دې. او هركله چې مبيع او ثمن دواړه معلوم دى. نود بيع په جواز كې څه شبه كيدلې شى.

وَقَبُولُ الْعَقْدِ فِي الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ او په کوم کي چي خيار دي په هغې کي عقد قبلول وَإِنْ كَانَ شَرْطًا لِانْعِقَادِ الْعَقْدِ فِي الْآخَرِ اګرچه په دوهم کي د عقد منعقد کیدلو لپاره شرط دي وَلَكِنَّ هَذَا غَيْرُ مُفْسِدٍ لِلْعَقْدِ خو دا شرط عقد فاسدونکی نه دي لِكَوْنِهِ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ ځکه چي دا هم محل بیع ده كَمَا إِذَا جَمَعَ بَيْنَ قِنٍّ وَمُدَبَّرٍ لکه (مثلاً) کله چي يو مطلق غلام اومدبر جمع کړی.

**تشریح:**- دا عبارت ديوې شبه خواب دي.شبه داده،چه په کوم غلام کي خيار دي.هغه غلام حکماً په بیع کي داخل نه دي.يعنی هغه غيرمبيع دي.او دوهم غلام په کوم کښي چي خيارنشته.هغه مبيع دي.نو ګويا په مبيع کي د بيع صحيح کاوه لپاره په غيرمبيع کي د بيع قبلول شرط ګرځولی شوی دی.اودا شرط مفسد د بيع دي.

**نظیره**⊙لکه څنګه چي غلام او آزاد دواړه په عقد واحده سره څرځول مفسد د بيع دی.ځکه چي غلام مبيع کيدلی شی.خو آزاد مبيع نشی کيدلي.نولکه څنګه چي دلته کي په مبيع کي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع کي د بيع قبلولو د شرط په وجه بيع فاسديږی.دغه ډول د متن په دوهم صورت کي هم بيع فاسديدل پکار دی.ځکه چي په دي کي هم بعينه هم دا صورت دي.

**الجواب**⊙ددي خواب دادي.چه په کوم غلام کي خياردي.هغه د مبيع محل دي.اوهر کله چي د بيع محل دي.نودا به په عقدبيع کي هم داخل وی.اګرچه په حکم د بيع يعنی د ملکيت حاصلولو په حق کي داخل نه وی.نو هر کله چي هغه غلام په کوم کي چي مشتری ته د دريِ ورځو خيار دي.د بيع دمحل کيدلو په وجه په عقدبيع کي داخل دی.نو په مبيع کي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع کي د بيع قبلولوشرط لګول لازمی نه دی.اوهر کله چي دا شرط نه لازميږی.نو بيع به هم فاسد نه وی.اودا داسي ده.لکه مثلاً يوکس مطلق غلام او مدبر په عقدواحد کي جمع کړل.نو په غلام کي به بيع جائز اونافذ وی.اګرچه زموږ په نيز په مدبر کي بيع نه نافذ کيږی. ځکه چي مدبر دملك انتقال نه قبلوی.حالانکه د بيع مقصد انتقال دملك وی.په دي وجه به په مدبر کي بيع نافذ نه وی.خوچونکه مدبر د مملوك کيدلو په وجه د بيع محل دي.اود بيع محل کيدلو په وجه په عقد د بيع کي داخل دي.په دي وجه دلته کي هم مبيع يعنی په غلام کي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع کي د بيع قبلولو شرط لګول لازمی نه دی.اوچونکه دا فاسد شرط لګول نه لازميږی.په دي وجه به د مطلق غلام بيع جائز وی.

؟ ددي په خلاف ني که آزاد اوغلام په يو بيع کي جمع کړل.نو بيع په دي وجه فاسديږی.چه آزاد د بيع محل قطعاً نه دي.اونه په عقد بيع کي داخليږی.اونه په حکم کي د بيع کي داخليدلي شی.نو چونکه آزاد قطعاً د بيع محل نه دی.په دي وجه په دي صورت کي مبيع يعنی په غلام کي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع يعنی په آزاد کي د بيع قبلولوشرط لازميږی. اودا شرط ،،شرط فاسد،، دي. اوشرط فاسد مفسد د بيع وی.په دي وجه به په دي صورت کي بيع فاسد وی.

وَالثَّالِثُ أَنْ يُفَصِّلَ دريم( صورت) دادي.چه د هريو ثمن بيان کړی وَلَا يُعَيِّنَ او هغه متعين نه وی.په کوم کي چي خيار دي.

**تشریح:**- د مسئلي دريم صورت دادي.چه په دواړو غلامانوکي د هريو ثمن جلا جلا بيان کړي شو.خو په کوم غلام کي چي خياروو.هغه متعين نکړي شو.

وَالرَّابِعُ أَنْ يُعَيِّنَ څلورم صورت دادي.په کوم کي چي خيار دي.هغه متعين وی وَلَا يُفَصِّلَ،اود هريو ثمن بيان نه وي فَالْعَقْدُ فَاسِدٌ فِي الْوَجْهَيْنِ:په دي دواړو صورتونوکي عقد فاسد دي إِمَّا لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ او ياځکه چي مبيع مجهول دي أَوْ لِجَهَالَةِ الثَّمَنِ يا په دي وجه چي ثمن مجهول دي.

**تشریح:**- څلورم صورت دادي.چه په کوم غلام کي خيار دي.هغه ني متعين کړلو.خود هريو ثمن ني جلا جلا بيان نه کړلو.په دي دواړو صورتونوکي عقد فاسد دي.په دريم صورت کي مبيع مجهول دي.ځکه چي کوم غلام کي خيار دي.هغه حکماً غيرمبيع دي.خومعلوم نه دي.چه داکوم يو غلام دي.نوهر کله چي دا معلوم نه دې.نو دوهم غلام کوم



چي مبيع دي.هغه هم نامعلومه اومجهول دي.اود مبيع مجهول کيدل مفسد دبيع دی.په دي وجه به په دي صورت کي بيع فاسد وی.اوپه څلورم صورت کي ثمن مجهول دي.ځکه چي د دواړو ثمن جلا جلا بيان نکړي شو.نو معلومه نشوه.چه په کوم غلام کي خيار دي.دهغه ثمن څومره دي.او په کوم کي چي خيار نشته.د هغه ثمن څومره دي.حالانکه په مشتری باندي في الحال دهغه غلام ثمن واجب دي.په کوم کي چي خيارنشته.اوچونکه د ثمن مجهول کيدلو په وجه بيع فاسديږی.په دي وجه به په دي صورت کي بيع فاسد وی.

## په يوځائي دوي (دوه) کپړو اخستلوکښي د يوي په اخستلوکښي د خيار حکم

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبَيْنِ فرمائی.چاچه دوي (دوه) کپړي په دي شرط واخستلي عَلَى أَنْ يَأْخُذَ أَيَّهُمَا شَاءَ بِعَشَرَةٍ چي په دي کي کوم اوغواړی.د لس درهمو په عوض واخلی وَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، اودا خيار دريِ ورځو پوري دي نودا بيع جائز ده وَكَذَا الثَّلَاثَةُ،دغه ډول په دريِ کپړو(کي هم جائز ده) فَإِنْ كَانَتْ أَرْبَعَةَ أَثْوَابٍ فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ [1] بيا که څلور کپړي وی،نو بيع فاسد ده.

**حل اللغة:** ① ثوبين،، تشنيه دثوب،جامه ② العشرة،، لس ③ ايام،جمع د يوم،ورځ④ ثلاثة، دري

**تشریح:**- په عبارت کي دثوبين نه مراد ،،احدالثوبين،، دي.مجازاً کُل ونيلي شوي دي.او جزء مراد اخستي شوي دي.صورت د مسئلي دادي.که يوسړی په دوي (دوه) يا دريِ کپړوکي يوه کپړه د لسودرهمو په عوض په دي شرط باندي واخستله.چه دي به په دريِ ورځو کي دننه په دي کپړوکي يوه کپړه متعين کوی.نودا بيع جائز ده.اوکه په څلورو کپړوکي ني يوه کپړه په دي شرط سره واخستله.نودا بيع فاسد ده.

وَالْقِيَاسُ أَنْ يَفْسُدَ الْبَيْعُ فِي الْكُلِّ لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ، او قياس دادي.چه د مجهول کيدلو په وجه بيع په ټولو صورتونوکي فاسد ده وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ اوهم دا د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله قول دي.

**تشریح:**- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د قياس تقاضا خوداده.چه د دوي (دوه) او دريِ کپړو په صورت کي هم بيع فاسدوی.ځکه چي مبيع صرف يوه کپړه ده.اوهغه دنه متعين کيدلو په وجه مجهول ده.او مجهول هم داسي چي ،،مفضی الی المنازعه،، دي.ځکه چي کپړي د ماليت په اعتبارسره مختلفي وی.اوچونکه د مبيع مجهول کيدل مفسد د بيع وی.په دي وجه په دي صورت کي بيع فاسد ده.هم دا قول د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله دي.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده أَنَّ شَرْعَ الْخِيَارِ لِلْحَاجَةِ إِلَى دَفْعِ الْغَبْنِ لِيَخْتَارَ چي د خيارمشروعيت د تاوان لري کاوه د اړتيا په لحاظ دي مَا هُوَ الْأَرْفَقُ وَالْأَوْفَقُ، چي کوم زيات نافع او موافق وی.هغه اختيار کړی وَالْحَاجَةُ إِلَى هَذَا النَّوْعِ مِنَ الْبَيْعِ مُتَحَقِّقَةٌ،او ددي ډول بيع حاجت هم متحقق دي لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى اخْتِيَارِ مَنْ يَثِقُ بِهِ ځکه چي عقدکونکي به د هغه کس اختيارولو اړخ ته محتاج وی.په چاچه دي اعتماد کوی أَوِ اخْتِيَارِ مَنْ يَشْتَرِيهِ لِأَجْلِهِ، يا د هغه سړی د خوښولو اړخ ته (به محتاج وی) د چا لپاره چي اخستل دی وَلَا يُمْكِنُهُ الْبَائِعُ مِنَ الْحَمْلِ إِلَيْهِ إِلَّا بِالْبَيْعِ او بائع مبيع هغه له د اوړلو نه بغير په عقدبيع باندي قدرت نه ورکوی فَكَانَ فِي مَعْنَى مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ نودا بيع هم د هغه بيع په معنی کي شوه.په کوم چي شريعت وارد شوي دي.

**حل اللغة:** ① الغبن،تاوان② الارفق،،زيات ګټور ③ الاوفق ،زيات موافق④ الاختيارمنتخب کيدل

**تشریح:**- وجه داستحسان داده.چه خيارشرط په دي اړتيا سره مشروع شوي دي.چه ،،من له الخيار،، په دي ورځوکي غور اوفکر اوکړی.او نقصان او دهوکه لري کړی.اوکوم چي دده لپاره مناسب وی.هغه اختيار کړی.او دغه ډول اړتيا په خيارتعين کي هم موجود دي.ځکه چي ډير کرته مشتری ددي خبري محتاجه وی.چه په چا بان

---

[1] القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله حيث يجوز للمشترى خيارالتعيين إستحساناً وأيضاً العرف والعادة يؤيدان الإستحسان قاله مفتى غلام قادرمدظله العالى) القول الراجح (١٩\٢)_

وَقَبُولُ الْعَقْدِ فِي الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ او په كوم كي چې خيار دې په هغې كي عقد قبلول وَإِنْ كَانَ شَرْطًا لِانْعِقَادِ الْعَقْدِ فِي الْآخَرِ اګرچه په دوهم كي د عقد منعقد كيدلو لپاره شرط دې وَلٰكِنَّ هٰذَا غَيْرُ مُفْسِدٍ لِلْعَقْدِ خو دا شرط عقد فاسدونكي نه دې لِكَوْنِهِ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ ځكه چې دا هم محل بيع ده كَمَا إِذَا جَمَعَ بَيْنَ قِنٍّ وَمُدَبَّرٍ لكه (مثلاً) كله چې يو مطلق غلام اومدبر جمع كړي.

**تشريح:-** دا عبارت ديوې شبه خواب دې.شبه داده.چه په كوم غلام كي خيار دې.هغه غلام حكماً په بيع كي داخل نه دې.يعنى هغه غيرمبيع دې.او دوهم غلام په كوم كښي چې خيارنشته.هغه مبيع دې.نو ګويا په مبيع كي د بيع صحيح كاوه لپاره په غيرمبيع كي د بيع قبلول شرط ګرځولى شوى دى.اودا شرط مفسد د بيع دې.

**نظيره®** لكه څنګه چې غلام او آزاد دواړه په عقد واحده سره خرڅول مفسد د بيع دى.ځكه چې غلام مبيع كيدلي شي.خو آزاد مبيع نشى كيدلې.نولكه څنګه چې دلته كي په مبيع كي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع كي د بيع قبلولو د شرط په وجه بيع فاسديږى.دغه ډول د متن په دوهم صورت كي هم بيع فاسديدل پكار دى.ځكه چې په دې كي هم بعينه هم دا صورت دې.

**الجواب®** ددې خواب دادې.چه په كوم غلام كي خياردې.هغه د مبيع محل دې.اوهركله چې د بيع محل دې.نودا به په عقدبيع كي هم داخل وى.اګرچه په حكم د بيع يعنى د ملكيت حاصلولو په حق كي داخل نه وى.نو هر كله چې هغه غلام په كوم كي چې مشترى ته د درې ورځو خيار دې.د بيع دمحل كيدلو په وجه په عقدبيع كي داخل دى.نو په مبيع كي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع كي د بيع قبلولوشرط لګول لازمى نه دى.اوهركله چې دا شرط نه لازميږى.نو بيع به هم فاسد نه وى.اودا داسې ده.لكه مثلاً يوكس مطلق غلام او مدبر په عقدواحد كي جمع كړل.نو په غلام كي به بيع جائز اونافذ وى.اګرچه زموږ په نيز په مدبر كي بيع نه نافذ كيږى. ځكه چې مدبر دملك انتقال نه قبلوى.حالانكه د بيع مقصد انتقال دملك وى.په دې وجه به په مدبر كي بيع نافذ نه وى.خوچونكه مدبر د مملوك كيدلو په وجه د بيع محل دې.اود بيع محل كيدلو په وجه په عقد د بيع كي داخل دې.په دې وجه دلته كي هم مبيع يعنى په غلام كي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع كي د بيع قبلولو شرط لګول لازمى نه دى.اوچونكه دا فاسد شرط لګول نه لازميږى.په دې وجه به د مطلق غلام بيع جائز وى.

® ددې په خلاف ني كه آزاد اوغلام په يو بيع كي جمع كړل.نو بيع به په دې وجه فاسديږى.چه آزاد د بيع محل قطعاً نه دې.اونه په عقد بيع كي داخليږى.اونه په حكم كي د بيع كي داخليدلى شي.نو چونكه آزاد قطعاً د بيع محل نه دې.په دې وجه په دې صورت كي مبيع يعنى په غلام كي د بيع قبلولو لپاره په غيرمبيع يعنى په آزاد كي د بيع قبلولوشرط لازميږى. اودا شرط ،،شرط فاسد،، دې. اوشرط فاسد مفسد د بيع وى.په دې وجه به په دې صورت كي بيع فاسد وى.

وَالثَّالِثُ أَنْ يُفَصِّلَ دريم( صورت) دادې.چه د هريو ثمن بيان كړى وَلَا يُعَيِّنَ او هغه متعين نه وى.په كوم كي چې خيار دې.

**تشريح:-** د مسئلې دريم صورت دادې.چه په دواړو غلامانو كي د هريو ثمن جلا جلا بيان كړې شو.خو په كوم غلام كي چې خياروو.هغه متعين نكړې شو.

وَالرَّابِعُ أَنْ يُعَيِّنَ څلورم صورت دادې.په كوم كي چې خيار دې.هغه متعين وى وَلَا يُفَصِّلَ،اود هريو ثمن بيان نه وى فَالْعَقْدُ فَاسِدٌ فِي الْوَجْهَيْنِ:په دې دواړو صورتونو كي عقد فاسد دې إِمَّا لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ او ياځكه چې مبيع مجهول دې أَوْ لِجَهَالَةِ الثَّمَنِ يا په دې وجه چې ثمن مجهول دې.

**تشريح:-** څلورم صورت دادې.چه په كوم غلام كي خيار دې.هغه ني متعين كړلو.خود هريو ثمن ني جلا جلا بيان نه كړلو.په دې دواړو صورتونو كي عقد فاسد دې.په دريم صورت كي مبيع مجهول دې.ځكه چې كوم غلام كي خيار دې.هغه حكماً غيرمبيع دې.خومعلوم نه دې.چه داكوم يو غلام دې.نوهركله چې دا معلوم نه دې.نو دوهم غلام كوم



چې مبيع دې.هغه هم نامعلومه اومجهول دې.اود مبيع مجهول كيدل مفسد دبيع دى.په دې وجه به په دې صورت كي بيع فاسد وى.اوپه څلورم صورت كي ثمن مجهول دې.ځكه چې د دواړو ثمن جلا جلا بيان نكړې شو نو معلومه نشوه.چه په كوم غلام كي خيار دې.دهغه ثمن څومره دې.او په كوم كي چې خيار نشته.د هغه ثمن څومره دې.حالانكه په مشترى باندې في الحال دهغه غلام ثمن واجب دې.په كوم كي چې خيارنشته.اوچونكه د ثمن مجهول كيدلو په وجه بيع فاسديږى.په دې وجه به په دې صورت كي بيع فاسد وى.

## په يوځائي دوې (دوه) كپړو اخستلوكښي د يوې په اخستلوكښي د خيارحكم

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبَيْنِ فرمائى.چاچه دوې (دوه) كپړې په دې شرط واخستلې عَلَى أَنْ يَأْخُذَ أَيَّهُمَا شَاءَ بِعَشَرَةٍ چې په دې كي كوم اوغواړى.د لس درهمو په عوض واخلى وَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ اودا خيار درې ورځو پورې دې نودا بيع جائز ده وَكَذَا الثَّلَاثَةُ دغه ډول په درې كپړو(كي هم جائز ده) فَإِنْ كَانَتْ أَرْبَعَةَ أَثْوَابٍ فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ[1] بيا كه څلور كپړې وى.نو بيع فاسد ده.

**حل اللغة:** ① ثوبين،، تثنيه دثوب،جامه ② العشرة،، لس ③ ايام ،جمع د يوم،ورځ ④ ثلاثة، درې

**تشريح:-** په عبارت كي دثوبين نه مراد ،،احدالثوبين،، دې.مجازاً كُل ونيلې شوې دې.او جزء مراد اخستې شوې دې.صورت د مسئلې دادې.كه يوسړې په دوې (دوه) يا درې كپړوكي يوه كپړه د لسودرهمو په عوض په دې شرط باندې واخستله.چه دې به په درې ورځو كي دننه په دې كپړوكي يوه كپړه متعين كوى.نودا بيع جائز ده.اوكه په څلورو كپړوكي نې يوه كپړه په دې شرط سره واخستله.نودا بيع فاسد ده.

وَالْقِيَاسُ أَنْ يَفْسُدَ الْبَيْعُ فِي الْكُلِّ لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ، او قياس دادې.چه د مجهول كيدلو په وجه بيع په ټولو صورتونوكي فاسد ده وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ اوهم دا د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله قول دې.

**تشريح:-** علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د قياس تقاضا خوداده.چه د دوې (دوه) او درې كپړو په صورت كي هم بيع فاسدوى.ځكه چې مبيع صرف يوه كپړه ده.اوهغه دنه متعين كيدلو په وجه مجهول ده.او مجهول هم داسې چې ،،مفضى الى المنازعه،، دې.ځكه چې كپړې د ماليت په اعتبارسره مختلفې وى.اوچونكه د مبيع مجهول كيدل مفسد د بيع وى.په دې وجه په دې صورت كي بيع فاسد ده.هم دا قول د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله دې.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده أَنَّ شَرْعَ الْخِيَارِ لِلْحَاجَةِ إِلَى دَفْعِ الْغَبْنِ لِيَخْتَارَ چې د خيارمشروعيت د تاوان لرې كاوه د اړتيا په لحاظ دې مَا هُوَ الْأَرْفَقُ وَالْأَوْفَقُ، چې كوم زيات نافع او موافق وى.هغه اختيار كړى وَالْحَاجَةُ إِلَى هٰذَا النَّوْعِ مِنَ الْبَيْعِ مُتَحَقِّقَةٌ،او ددې ډول بيع حاجت هم متحقق دې لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى اخْتِيَارِ مَنْ يَثِقُ بِهِ ځكه چې عقدكونكې به د هغه كس اختيارولو اړخ ته محتاج وى.په چاچه دې اعتماد كوى أَوِ اخْتِيَارِ مَنْ يَشْتَرِيهِ لِأَجْلِهِ، يا د هغه سړى د خوښوالى اړخ ته (به محتاج وى) د چا لپاره چې اخستل دى وَلَا يُمَكِّنُهُ الْبَائِعُ مِنَ الْحَمْلِ إِلَيْهِ إِلَّا بِالْبَيْعِ او بائع مبيع هغه له د اوړلو نه بغير په عقدبيع باندې قدرت نه وركوى فَكَانَ فِي مَعْنَى مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ نودا بيع هم د هغه بيع په معنى كي شوه.په كوم چې شريعت وارد شوې دې.

**حل اللغة:** ① الغبن،تاوان ② الارفق،،زيات ګټور ③ الاوفق ،زيات موافق ④ الاختيارمنتخب كيدل

**تشريح:-** وجه داستحسان داده.چه خيارشرط په دې اړتيا سره مشروع شوې دې.چه ،،من له الخيار،، په درې ورځوكي غور اوفكر اوكړى.او نقصان او دهوكه لرې كړى.اوكوم چې دده لپاره مناسب وى.هغه اختيار كړى.او هم دغه ډول اړتيا په خيارتعين كي هم موجود دې.ځكه چې ډيركرته مشترى ددې خبرې محتاجه وى.چه په چا باندې

---

[1] ) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله حيث يجوز للمشترى خيارالتعيين إستحساناً وأيضاً العرف والعادة يؤيدان الإستحسان كذا قاله مفتى غلام قادرمدظله العالى) القول الراجح (۱۹\۲)_

دده اعتماد وي. کېږي هغه خوښوي. او کله دهغه کس د خوښي محتاجه وي. دچا لپاره چې اخستل کوي. او بائع د عقدبيع نه بغير د اوړلو اجازت نه ورکوي. نودې په څوکېږوکي يوه کپړه د خيارتعين په شرط سره د اخستلو محتاج وي. نود خيارتعين اړتيا د خيارشرط په معنى کي شو. اود خيارشرط جواز په شريعت سره ثابت دي. نو خيارتعين هم خيارشرط سره لاحق کړي شوي دي. او جائز ګرځولي شوي دي.

غَيْرَ اَنَّ هٰذِهِ الْحَاجَةَ تَنْدَفِعُ بِالثَّلاثِ خودا اړتيا په درې کپړو سره لرې کيږي لِوُجُوْدِ الْجَيِّدِ وَالْوَسَطِ وَالرَّدِيْءِ فِيْهَا. ځکه چې په درې کپړوکي اعلى، ردي او اوسط (درجې) موجود دي وَالْجَهَالَةُ لَا تُفْضِيْ اِلَى الْمُنَازَعَةِ فِي الثَّلَاثَةِ لِتَعْيِيْنِ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ او د من له الخيار د متعين کاوه په وجه په درې کپړو کي جهالت مفضى الى المنازعه نه دې. وَكَذَا فِي الْاَرْبَعِ او هم دغه ډول په څلورو کپړوکي.

حل اللغة: - ① تندفع، لرې کيږي ② الجيد، ښه ③ الردي، خراب ④ المنازعة جګړه

تشريح: - خوچونکه د خيارتعين د جواز مدار په اړتيا باندې دي. په دې وجه چې څومره اړتيا وي. خيارتعين به هم هغه اومره جائز وي. او اړتيا په درې کپړو سره پوره کيږي. ځکه به په درې کپړو کي خيارتعين جائز وي. خو په څلوروکي به جائز نه وي. او پاتې شو د درې کپړو په صورت کي د مبيع مجهول کيدل، نو بلاشبه مبيع مجهول دي. خوچه کله،، من له الخيار،، ته د يوې کپړې متعين کاوه اختيار ورکړې شو. نودا جهالت به ،،مفضى الى المنازعه،، نه وي. او کوم جهالت چه،، مفضى الى المنازعه،، نه وي. هغه مفسد د بيع هم نه وي. په دې وجه به په دې صورت کي بيع فاسد نه وي.

اِلَّا اَنَّ الْحَاجَةَ اِلَيْهَا غَيْرُ مُتَحَقِّقَةٍ خو دې ارخ ته حاجت متحقق نه دې وَالرُّخْصَةُ ثُبُوْتُهَا بِالْحَاجَةِ وَكَوْنُ الْجَهَالَةِ غَيْرَ مُفْضِيَةٍ اِلَى الْمُنَازَعَةِ حالانکه د اجازت ثبوت دحاجت او جهالت نه بغير مفضى الى المنازعه کيدلو په وجه کيږي فَلَا تَثْبُتُ بِاَحَدِهِمَا نو په دې دواړوکي به په يوه خبره سره اجازت نه ثابتيږي.

حل اللغة: - ① المتحققة ثابت شوې ② الرخصة اجازت ③ الحاجة، ضرورت ④ مفضية، اوړونکې

تشريح: - پاتې شودا سوال چې په څلورو کپړوکي هم چې کله،، من له الخيار،، ته د متعين کولواختيار ورکړې شو. نو جهالت،، مفضى الى المنازعه،، پاتې نشو. نو په څلورو کپړو کي هم خيارتعين جائز کيدل پکار دي.

الجواب: ددې خواب دادې. چه دخيارتعين جائز کيدل په دوې (دوه) خبرو باندې موقوف دي. يودا چې حاجت وي. دوهم داچه جهالت،، غيرمفضى الى المنازعه،، وي. په دې دواړو کي په يوسره جواز نه ثابتيږي. او په څلور کپړوکي دمبيع مجهول کيدل دخيات (کپړو والا) د تعين په وجه اګرچه،، غيرمفضى الى المنازعه ،، دې. خوحاجت متحقق نه دې. ځکه چې په درې کپړوکي اعلى، ردي، او منځنى ډول موجودکيدلو په وجه په درې کپړوسره اړتيا پوره شو. او څلورمه کپړه د اړتيا نه زياتى ده. نو په څلوروکپړوکي د خيار تعين د اړتيا نه کيدلو په وجه خيارتعين په څلورو کپړوکي جائز نه دې.

### د خيار تعين سره د خيارشرط حکم

ثُمَّ قِيْلَ: يُشْتَرَطُ اَنْ يَكُوْنَ فِيْ هٰذَا الْعَقْدِ خِيَارُ الشَّرْطِ مَعَ خِيَارِ التَّعْيِيْنِ. بيا ويلي شوي دي. چه په دې عقدکي د خيارتعين سره خيارشرط کيدل هم ضروري دي وَهُوَ الْمَذْكُوْرُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او په جامع صغيرکي هم دا ذکر دي وَقِيْلَ لَا يُشْتَرَطُ [1] او ويلي شوي دي. چه د خيارشرط کيدل ضروري نه دي وَهُوَ الْمَذْكُوْرُ فِي الْجَامِعِ الْكَبِيْرِ او په جامع کبيرکي هم دا ذکر دي فَيَكُوْنُ ذِكْرُهُ عَلٰى هٰذَا الْاِعْتِبَارِ وِفَاقًا نود جامع کبير په اعتبار باندې د خيارشرط ذکر اتفاقي دې لَا شَرْطًا او د

[1]) القول الراجح هو هذا قول عدم إشتراط خيارالشرط مع خيارالتعيين كذا فى فتح القدير(٥٢٢\٥) الكفاية (٥٢٣\٥) وردالمحتار(٦٦\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٠١٢)-



شرط په طور نه دې. وَاِذَا لَمْ يَذْكُرْ خِيَارَ الشَّرْطِ او کله چې خيار شرط ذکر نه وي لَا بُدَّ مِنْ تَوْقِيْتِ خِيَارِ التَّعْيِيْنِ بِالثَّلَاثِ عِنْدَهُ نود امام صاحب رحمه الله په نيز درې ورځو سره خيار تعيين موقت کول ضروري دي وَبِمُدَّةٍ مَعْلُوْمَةٍ اَيَّتُهَا كَانَتْ عِنْدَهُمَا اود صاحبينو رحمهما الله په نيز معلوم مودې سره چې څه (خيار) هم وي.

حل اللغة: - ① التعيين، معين کول ② الوفاق موافق ③ توقيت، وخت مقرر کول الثلاث درې

تشريح: - علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه امام محمد رحمه الله دا مسئله پخپلو دوې (دوه) کتابونوکي ذکرکړې ده. او د دواړو کتابونو په عبارتونوکي څه قدرې اختلاف دې. چه دجامع صغير په عبارت کي د «وهو بالخيار ثلاثة ايام» عبارت ذکر دې. او په جامع کبيرکي دا عبارت ذکرنه دې. نود جامع صغير د عبارت مطابق خيارتعين سره د خيارشرط کيدل ضروري نه دي. او په جامع صغيرکي د خيارشرط ذکر اتفاقي دې. د شرط په طور نه دې. بهرحال که خيارتعين سره د خيارشرط هم ذکراوکړې شي. او عاقدين په دې باندې راضي شو. نو الحمدلله مشتري ته به د خيارتعين په وجه د يوې کپړې متعين کولواختيار وي. اود خيار شرط په وجه به د بيع فسخ کولو. اود جائز کاوه اختيار حاصل وي. نو که مشتري دواړه کپړې واپس کړلې. نود خيارشرط په وجه جائز دي. او که يوه کپړه ئې واپس کړله. نودا به د خيار په طور تعين وي. اوکه د خيارتعين سره ئې د خيارشرط ذکر اونکړلو. نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د خيارتعين موده درې ورځې وي. اود صاحبينو رحمهما الله په نيزبه معلومه موده وي. که هرڅومره دي.

ثُمَّ ذَكَرَ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ: اِشْتَرٰى ثَوْبَيْنِ بيا په بعض نسخوکي د «اشترى ثوبين» ذکر دي وَفِيْ بَعْضِهَا اِشْتَرٰى اَحَدَ الثَّوْبَيْنِ وَهُوَ الصَّحِيْحُ او بعضو کي احدالثوبين ذکر دې. هم دا صحيح ده لِاَنَّ الْمَبِيْعَ فِي الْحَقِيْقَةِ اَحَدُهُمَا ځکه چې په حقيقت کي مبيع په دې دواړوکي يو دې وَالْاٰخَرُ اَمَانَةٌ او دويمه کپړه امانت دې وَالْاَوَّلُ تَجَوُّزٌ وَاسْتِعَارَةٌ او رومبې مجاز او استعاره ده.

تشريح: - صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه د جامع صغير په بعض نسخوکي د «اشترى ثوبين» لفظ دې. او په بعضو کي د «اشترى احدالثوبين» لفظ دې. زيات صحيح ،،احدالثوبين،، دې. ځکه چې مبيع په حقيقت کي يوه کپړه ده. او دويمه کپړه د مشتري په قبضه کي امانت ده. او رومبئ نسخه يعنى،، اشترى ثوبين،، مجاز او استعاره ده. يعنى کُل ويلې شوې دې. او جزء ترې مراد دې.

### د يوځيز په هلاکيدلو يا عيب داره کيدلوکښې د بيع حکم

وَلَوْ هَلَكَ اَحَدُهُمَا اوکه په دواړوکپړوکي يوه هلاک شوه اَوْ تَعَيَّبَ يا عيب دار شوه لَزِمَهُ الْبَيْعُ فِيْهِ بِثَمَنِهِ نو په دې کي به ددې د ثمن په عوض بيع لازم وي وَتَعَيَّنَ الْاٰخَرُ لِلْاَمَانَةِ او دويمه کپړه د امانت کيدلو لپاره متعين شوه لِامْتِنَاعِ الرَّدِّ بِالتَّعَيُّبِ ځکه چې د عيب دارکيدلو په وجه واپس کول ممتنع شو وَلَوْ هَلَكَا جَمِيْعًا مَعًا اوکه دواړه په يوځائې هلاک شوې يَلْزَمُهُ نِصْفُ ثَمَنِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په ده به په دې دواړوکي د هر يو نصف ثمن لازم وي لِشُيُوْعِ الْبَيْعِ وَالْاَمَانَةِ فِيْهِمَا ځکه چې بيع او امانت په دې دواړوکي پرخپاره شوې (خور شوې) دي.

حل اللغة: ① تعيب، عيب داره شوه ② معا، يوځائې ③ الشيوع خوروالې ④ الامتناع، ،منع کيدل

تشريح: - صورت د مسئلې دادې. چه د مشتري په دواړه کپړو باندې د قبضه کاوه نه روسته که يوه کپړه هلاک شوه. يا عيب داره شوه. نو په دې کپړه کي به بيع لازم وي. او په مشتري به ددې ثمن واجب وي. او دويمه کپړه به د مشتري په قبضه کي امانت وي. که د رومبئ کپړې هلاکيدلو نه روسته دويمه کپړه هلاکه شوه. نو ددې په وجه به په مشتري باندې هيڅ تاوان واجب نه وي. ځکه چې د اماناتو په سلسله کي «الامانات لاتضمن» اصول مشهور دي. او په رومبئ هلاک شوې کپړې کي به بيع ځکه لازم وي. چه د هلاکت يا د عيب په وجه ددې کپړې واپس کول ممتنع شو. نود کومې کپړې چې واپس کول ممتنع شو. ګويا چې مشتري هم دا اختيار کړې ده. او کومه چې مشتري

اختيار کړي.په هغې کې بيع لازم وي.په دې وجه به په دې کې بيع لازم وي.اوبه مشتري به په دې دواړوکې د هريوې نيم ثمن واجب وي.ځکه چې د عدم اولويت په وجه په دواړوکې هريومبيع دې.او هريو امانت دې.يعنی بيع او امانت په دواړوکې شائع ( ګډ ) دې.نوچونکه د هر يوې کېږې نصف مبيع،او نصف امانت دې.په دې وجه به د هرې يوې کېږې د نصف مبيع کيدلو په وجه نصف ثمن واجب وي.اود نصف امانت کيدلو په وجه به ددې تاوان واجب نه وي.

وَلَوْ كَانَ فِيهِ خِيَارُ الشَّرْطِ اوکه په بيع کې ( د خيار تعيين سره) خيار شرط هم وي لَهُ أَنْ يَرُدَّهُمَا جَمِيعًا نود مشتري لپاره به ددې دواړو د واپس کاوه اختيار وي وَلَوْ مَاتَ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ اوکه دا کس مړشو.د کوم لپاره چې اختيار دې فَلِلْوَارِثِ أَنْ يَرُدَّ أَحَدَهُمَا نو دده وارث ته اختيار دې.چه دې په دې دواړوکې يو واپس کړی لِأَنَّ الْبَاقِيَ خِيَارُ التَّعْيِينِ لِلِاخْتِلَاطِ ځکه چې د ملك مخلوط کيدلو په وجه صرف خيار تعين پاته دې وَهَذَا لَا يَتَوَقَّفُ فِي حَقِّ الْوَارِثِ اوهم په دې وجه د وارث په حق کې هيڅ وخت متعين نه دې وَأَمَّا خِيَارُ الشَّرْطِ لَا يُورَثُ او پاتې شو خيارشرط،نو په دې کې ميراث نه جاری کيږی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ اومونږ دا وړاندې ذکرکړی دی.

**حل اللغة:-** ① **الاختلاط** ګډون ② **يتوقف**،، موقوف کيږی③ **يورث**،، ميراث جاری کيږی ④ **التعيين**،، معين کول

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دخيارتعين سره خيارشرط هم وي.نو مشتري ددې دواړوکېږو واپس کاوه اختيار لري.ځکه چې مشتري په يوه کېږه کې خو امين دې.نودا د په حکم د امانت سره واپس کولې شي.اويه دويمه کېږه کې مشتري دې.خو ددې لپاره خيارشرط دې.نودا د خيارشرط په وجه واپس کولې شي.اوکه مشتري په درې ورځو کې دننه مړشو.نو دده خيارشرط باطل شو.اوخيارتعين پاته دې.نود وارث لپاره د خيارتعين لاندې د يوې کېږې واپس کاوه اختيار شته دې.خيارشرط خو په دې وجه باطل دې.چه په خيارشرط کې ميراث نه جاري کيږی.لکه چې وړاندې بيان شوی دی.او پاتې شو خيارتعين،نودا د ميراث په طور وارث اړخ ته نه منتقل کيږی.بلکه د مورث( مړی ) خيارتعين د مرګ په وجه باطل شو.خوچونکه په دوې (دوه) کېږوکې د يوې کېږې متعين کاوه نه بغير مشتري مړشو.او ددې کېږې مالك دده وارث شو.نود وارث ملك د بائع ملك سره مخلوط شو.په دې وجه وارث ته دخيار تعين د ابتداء حق ورکړې شو.چه دې خپل ملك متعين کړي.وارث چونکه د ميراث په طورد خيارتعين نه مستحق کيږی.په دې وجه د وارث په حق کې دخيارتعين هيڅ موده متعين نه ده.حالانکه د مورث په حق کې د خيارتعين موده متعين ده.که درې ورځې وی.لکه څنګه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې.يا معلومه موده وی.لکه څنګه چې د صاحبينو رحمهما الله مذهب دې.نو که د وارث لپاره خيارتعين د ميراث په طور ثابتيدلې.نود وارث لپاره به هم متعينه موده ضروری وه.لکه څنګه چې دمورث لپاره متعين وه.

### د يوکور په خيارشرط سره اخستلو نه روسته ددې پخواکښې دوهم کورد شفعه په طوراخستل

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ اوکه يوکس يو کور د خيار په شرط واخستلو فَبِيعَتْ دَارٌ أُخْرَى بِجَنْبِهَا بيا دوهم کور ددې په اړخ کې خرڅ شو فَأَخَذَهَا بِالشُّفْعَةِ بيا دا دوهم کور مشتري د شفعه په طور واخستلو فَهُوَ رِضًا نودا ( په بيع باندې) رضامندی ده.

**حل اللغة:-** ① **دار** کور② **اخرى**،، بل \ دويم③ **الاستدامة**،، دائمی ملکيت ④ **الجوار** ګاونډيتوب

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه يوسړی يوکور د درې ورځو د خيارپه شرط سره واخستلو.يا د خيار په موده کې ددې په خواکې دوهم کور خرڅيدلو.او مشتري د حق شفعه دعوه اوکړله.اودا دوهم کورئې واخستلو.نود شفعه دا دعوه کول په بيع باندې رضامندی ښکاره کول دی.ددې په وجه دمشتري خيار ساقطيږی.

لِأَنَّ طَلَبَ الشُّفْعَةِ يَدُلُّ عَلَى اخْتِيَارِهِ الْمِلْكَ فِيهَا ځکه چې شفعه طلب کول په دارمبيعه کې د مشتري ملکيت اختيارولو باندې دلالت کوی لِأَنَّهُ مَا ثَبَتَ إِلَّا لِدَفْعِ ضَرَرِ الْجِوَارِ ځکه شفعه ثابت نشوه.مګر د ګاونډی دضرر لرې کاوه لپاره وَذَلِكَ



بِالِاسْتِدَامَةِ اودا خبره به په دائمی ملکيت طلب کاوه سره حاصليږی فَيَتَضَمَّنُ ذَلِكَ سُقُوطَ الْخِيَارِ سَابِقًا عَلَيْهِ نو طلب د شفعه به متضمن وی.چه د شفعه طلب کاوه نه وړاندې خيار ساقط شی فَيَثْبُتُ الْمِلْكُ مِنْ وَقْتِ الشِّرَاءِ نود اخستلو د وخت څخه به ملکيت ثابتيږی فَيَتَبَيَّنُ أَنَّ الْجِوَارَ كَانَ ثَابِتًا او ښکاره کيږی به چې ګاونډی توب ثابت وو.

**تشريح:-** دليل دادې.چه د مشتري شفعه طلب کول،ددې خبرې دليل دې.چه مشتري په مبيعه دارکې خپل ملك ثابتول غواړی.ځکه چې شفعه د ګاونډی ضرر لرې کاوه لپاره ثابتيږی.اوګاونډی توب ثابتيږی په اخستلی شوی کورکې د هميشه ملکيت ثابتولو سره.اود هميشه ملکيت ثابتول،د ملکيت تقاضا کوی.او ملك په خيار سره نه ثابتيږی.نو خيار به ساقط وی.اود اخستلو دوخت څخه به په مبيعه دار کې ملك ثابت اوښکاره شی.چه په دوهم کورکې د بيع په وخت جوار او ګاونډی توب ثابت وو.

وَهَذَا التَّقْرِيرُ يُحْتَاجُ إِلَيْهِ لِمَذْهَبِ أَبِي حَنِيفَةَ خَاصَّةً او ددې تقرير احتياج خاص طور د امام ابوحنيفه رحمه الله د مذهب لپاره دې.

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه دا تقريرخاص طور باندې دامام ابوحنيفه رحمه الله په مذهب کې دې ځکه چې دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خيار د مشتري په ملك کې داخليږی.په دې وجه د مشتري لپاره په دوهم کور، د حق شفعه دعوه کول،او اخستلوکې هيڅ اشکال نشته دې.

### د شريکانو په خيارسره د غلام اخستلوکښې د يوراضي کيدل اود دوهم ردکول

قَالَ وَإِذَا اشْتَرَى الرَّجُلَانِ عَبْدًا فرمائي.چه کله دوې (دوه) سړو يو غلام په دې شرط واخستلو عَلَى أَنَّهُمَا بِالْخِيَارِ چې دوی دواړو ته خيارشرط حاصل دې فَرَضِيَ أَحَدُهُمَا بيا په دې دواړوکې يو راضي شو فَلَيْسَ لِلْآخَرِ أَنْ يَرُدَّهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] نود امام ابوحنيفه په نيز دوهم اختيار نشته چې واپس کړي. وَقَالَا: لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز دوهم ته د واپس کاوه اخيتار دې

**حل اللغة:-** ① **رجلان،** تثنيه د رجل،سړې② **الخيار** اختيار③ **اسقاط**،، ساقطول④ **الابطال** باطلول

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه دوې (دوه) سړو يو غلام په دې شرط واخستلو.چه دواړو لپاره به خيارشرط وی.بيا په دې دواړوکې يوپه بيع باندې راضی شو.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد دوهم مشتري خيار باطل شو.ده ته به د خپل اختيار لاندې د بيع رد کاوه اختيار نه وی.او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه دده خيارپاته دې.ده ته د خپل اختيارلاندې د بيع رد کولوپوره پوره اختياردې.

وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ خِيَارُ الْعَيْبِ وَخِيَارُ الرُّؤْيَةِ او هم په دې اختلاف باندې خيارعيب او خيار رؤيت دې.

**تشريح:-** هم دا اختلاف په خياربيع او خيار رؤيت کې هم دې.د خيارعيب صورت دادې.چه دوې (دوه) سړو يوڅيز د کتلو نه بغير واخستلو.بيا په کتلو سره يو راضی شو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوهم مشتري د خياررؤيت په وجه دا نشي واپس کولې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز واپس کولې شي.

لَهُمَا صاحبينو رحمهما الله دليل دادې أَنَّ إِثْبَاتَ الْخِيَارِ لَهُمَا إِثْبَاتُهُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا چې دواړو لپاره خيار ثابتول، په دې دواړوکې د هر يو لپاره خيارثابتول دی فَلَا يَسْقُطُ بِإِسْقَاطِ صَاحِبِهِ په دې وجه دده د انډيوالان په خيار ساقطولو سره به دده خيار نه ساقطيږی لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّهِ ځکه چې په دې کې دده حق باطلول دی.

**تشريح:-** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه د دواړو مشتريينو لپاره دخيار اثبات په حقيقت کې په دې دواړو کې د هريو لپاره اثبات دې.اوکوم خيار چې په دواړوکې د هريو لپاره ثابت شی.دا که يوکس ساقط کړلو.نو په دې سره د دوهم کس خيار نه ساقطيږی.ځکه چې په دې کې د دوهم مشتري حق باطلول لازميږی.اود دوهم حق باطلول جائز

---

[1]) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا فى فتح القدير(٥\٥٢٧) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢١)-

نه دی.په دې وجه صرف د یوکس په خیارساقطولو سره د دوهم مشتری خیارنه ساقطیږی.

وَلَهُ اود امام صاحب رحمه الله دلیل دادې أَنَّ الْمَبِيعَ خَرَجَ عَنْ مِلْكِهِ غَيْرَ مَعِيبٍ بِعَيْبِ الشَّرِكَةِ چې د بائع د ملك نه مبیع په داسې حالت کې اووتلو.چه په دې کې د شرکت عیب نه وو فَلَوْ رَدَّهُ أَحَدُهُمَا نو که په دوی دواړوکې یودا ردکړی رَدَّهُ مَعِيبًا بِهِ نو دا به د شرکت په عیب سره عیب دار واپس کوی وَفِيهِ إِلْزَامُ ضَرَرٍ زَائِدٍ حالانکه په دې کې د زیاتی ضرر الزام دی.

حل اللغة:- ① معيبه، عیبداره ② الزام، لازمول ③ الضرر نقصان\تکلیف ④ زائد، زیاتی

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه مبیع د بائع د ملکیت نه په داسې حالت کې وتلې دې.چه په دې کې دشرکت عیب نه وو.اوس که په دې دواړو مشتریینوکې صرف یومشتری دا واپس کړی.نو په داسې حالت کې به ئې واپس کړی.چه په دې کې دشرکت عیب دې.یعنی د یو مشتری ( کوم چې بیع نه ده ردکړې ) او بائع په مینځ کې بیع مشترك شوه.حالانکه په دې صورت کې په بائع باندې زیاتی ضرر لازمیږی.او په خپل عمل سره بل کس په ضرر کې اخته کول شرعاً جائز نه دی.په دې وجه دواړه مشتریینوکې دیوکس په بیع باندې د رضامندئ نه روسته دوهم مشتری ته د بیع رد کاوه اختیارنه وی.په عبارت کې ضرر د زیاتوالی په قیدسره ځکه مقید کړې دې.چه د رد ممتنع کیدلو په صورت کې به دهغه مشتری نقصان وی.کوم چې په بیع باندې راضی نشو.بلکه دا ردکول غواړی.خو رد د بیع ممتنع کیدلو په صورت کې د مشتری نقصان کم دې.اود رد کاوه په صورت کې د بائع نقصان زیات دې.په دې وجه د بائع د نقصان لحاظ اوساتلې شو.اود واپس کاوه اجازت ورنکړې شو.

وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَةِ إِثْبَاتِ الْخِيَارِ لَهُمَا اود دواړو لپاره خیار ثابتولو سره دا نه لازمیږی كه الرِّضَا بِرَدِّ أَحَدِهِمَا چې دې په دې دواړوکې د یو په راضی کاوه باندې راضی وی لِتَصَوُّرِ اجْتِمَاعِهِمَا عَلَى الرَّدِّ ځکه چې د دواړو په واپس کاوه باندې متفق کیدل ممکن دی.

حل اللغة: ① اثبات، ثابتول ② الرضی، رضا ③ اجتماع ④ یوبل سره جمع کیدل ⑤ الرد، ، واپس کیدل

تشریح:- په دې عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د دلیل خواب دې.حاصل د ځواب دادې.چه دواړه مشتریینو ته په خیار ورکولوسره دا نه لازمیږی.چه بائع په دې دواړوکې دیوکس په واپس کاوه باندې هم راضی وی.ځکه چې د دواړو په اتفاق سره واپس کول ممکن دی.نو بائع په دې خبره راضی شوې وو.چه دواړه په شریکه بیع پوره کړی.یا دواړه په شریکه واپس کړی.په دې هیڅ کله راضی نه وو.چه یومشتری بیع پوره کړی.او دوهم ئې ردکړی.

**یو غلام د نان پز یا د کاتب په حیثیت سره اخستلو نه روسته ددې په خلاف ختلوکښې د بیع حکم**

قَالَ وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا فرمائی.که یو کس په دې شرط باندې غلام خرڅ کړو عَلَى أَنَّهُ خَبَّازٌ أَوْ كَاتِبٌ چې دې نان پز یا خطاط دې وَكَانَ بِخِلَافِهِ حالانکه دا ددې خلاف اوختلو فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ نو مشتری ته اختیار دې.که غواړی.نودا دې د پوره ثمن په عوض واخلی وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ اوکه غواړی.نو ترك دې کړی.

حل اللغة:- ① خبازنانبائی ② كاتب، لیکونکې ③ الثمن، ، قیمت ④ الترک پریښودل

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوکس یو غلام په دې شرط باندې واخستلو.چه دې د ډوډئ پخولو د فن نه خبردې.یا په کتابت باندې پوهیږی.خو معلومه شوه.چه نه خودې په ډوډئ پخولو پوهیږی.اونه دکتابت د فن نه خبر دې.نو مشتری ته به اختیار وی.که غلام اخستل غواړی.نو د پوره ثمن په عوض به ئې اخلی.اوکه رد کول ئې اوغواړی.نو بیع دې پریږدی.

لِأَنَّ هَذَا وَصْفٌ مَرْغُوبٌ فِيهِ ځکه دا داسې وصف دې.چه ددې شوق کولای شی فَيُسْتَحَقُّ فِي الْعَقْدِ بِالشَّرْطِ.نو په عقدبیع کې شرط کاوه سره استحقاق کیږی ثُمَّ فَوَاتُهُ يُوجِبُ التَّخْيِيرَ بیا ددې وصف فوت کیدل مشتری ته د اختیار ور کاوه موجب دې لِأَنَّهُ مَا رَضِيَ بِدُونِهِ ځکه چې مشتری په بیع باندې ددې وصف نه بغیر نه راضی کیږی.

حل اللغة:- ① مرغوب، هغه شئ چې رغبت په کې کولې شی ② فوات، فوت کیدل ③ دون، ، کم ④ يستحق، مستحق کیږی



تشریح:- دلیل دادې.چه د ډوډئ پخولو فن.او فن کتابت یو داسې وصف دې.چه دې اړخ ته شوق کیږی.اوداسې وصف شرط لګول،چه هغې اړخ ته شوق کیږی.دعقدبیع مناسب دی.په دې وجه د داسې مرغوب فیه وصف په فوت کیدلو سره مشتری لپاره اختیار ثابتیږی.ځکه چې ددې وصف نه بغیر مشتری په مبیع باندې راضی نه دې.خود مرغوب فیه وصف په فوت کیدلوسره عقد نه فاسدیږی.ځکه چې د خباز او غیرخباز په مینځ کې اختلاف،

وَهَذَا يَرْجِعُ إِلَى اخْتِلَافِ النَّوْعِ لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ فِي الْأَغْرَاضِ،اودا په اغراض کې د تفاوت د کموالی په وجه اختلاف نوع اړخ ته راجع دې فَلَا يَفْسُدُ الْعَقْدُ بِعَدَمِهِ نو ددې په نه کیدلو سره به عقد نه فاسدیږی بِمَنْزِلَةِ وَصْفِ الذُّكُورَةِ وَالْأُنُوثَةِ فِي الْحَيَوَانَاتِ لکه ( ځنګه چې ) په حیواناتو کې د نر او ماده وصف دې وَصَارَ كَفَوَاتِ وَصْفِ السَّلَامَةِ او دا داسې شوه.لکه د وصف سلامت فوت کیدل

حل اللغة: ① يرجع، واپس کیږی ② الاغراض ،، جمع د غرض، مقصد ③ الحيوانات، جمع د حیوان ،ځاروی

تشریح:- اود کاتب او غیرکاتب په مینځ کې اختلاف، اختلاف فی النوع دې.او اختلاف فی ا لنوع ځکه دې.چه ددې دواړو په اغراض اومنافعو کې تفاوت کم دې.لکه مثلاً په حیواناتو( ځناورو) کې د نر اوماده اختلاف.د اختلاف فی النوع په صورت کې عقد نه فاسدیږی.ځکه چې په دې صورت کې مبیع یعنی قوت خو موجود دې.خوکوم وصف (مثلاً سور رنګ کیدل ) ئې چې ذکر کړې وو. هغه معدوم دې.نوهم دغه ډول ډوډئ پخولو والا کیدل،او کاتب کیدل صرف یو وصف دې.نو ددې په معدوم کیدلو سره بیع نه فاسدیږی.خوچونکه د مشتری رضامندی کمه وده شوې ده.په دې وجه به مشتری ته اختیار ضرور وی.اودا داسې ده.لکه مثلاً یوکس یو شئ په دې شرط واخستلو.چه دا به د عیبونو نه سلامت وی.خودا شئ معیب،او عیب داره اوختلو.نو مشتری ته به اختیاروی.چه دا اخلی.یا ئې واپس کړی.

وَإِذَا أَخَذَهُ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ،او کله چې مبیع اخلی.نود پوره ثمن په عوض به اخلی لِأَنَّ الْأَوْصَافَ لَا يُقَابِلُهَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ ځکه چې د اوصاف په مقابله کې د ثمن نه څه نشی کمولې لِكَوْنِهَا تَابِعَةً فِي الْعَقْدِ ځکه چې اوصاف په عقد کې تابع وی عَلَى مَا عُرِفَ لکه ځنګه چې وړاندې معلوم شو.

حل اللغة:- ① اخذ، اخلی ② جميع تول ③ يقابل، مقابله کوی ④ عرف.. معلومه شوې

تشریح:- خو دومره ضرور ده.چه د وصف معدوم کیدلو باوجود که مشتری ددې د اخستلو اراده اوکړله.نود پوره ثمن په بدل کې به ئې اخلی.په ثمن کې به د کمی کاوه اجازت نه وی.ځکه چې وړاندې تیر شوی دی.چه اوصاف چونکه په عقدکې تابع وی.په دې وجه ددې په مقابله کې د ثمن څه برخه نه راځی.یعنی د اوصافو کموالی یا زیاتوالی سره،ثمن نه کمیږی.او نه زیاتیږی.

## باب خيار الرؤية

ژباړه:- ( دا) باب د خیار رؤیت ( په بیان کې ) دې.

تشریح:- چونکه خیار رؤیت د خیارعیب نه زیات قوی دې ځکه چې خیار رؤیت بیع مکمل کیدلو نه منع کوی.اود خیارعیب په صورت کې بیع مکمل کیږی.خو حکم د بیع یعنی ملکیت نه لازمیږی. اومعلومه ده چې کوم شئ د بیع تمامیدلو نه مانع وی.دا د هغې نه اقوی وی.کوم چې دحکم د لزوم لپاره مانع وی.

**دخیار رؤیت شرعی حیثیت**

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى شَيْئًا لَمْ يَرَهُ اوکه یوکس د کتلو نه بغیر څه شئ واخستلو فَالْبَيْعُ جَائِزٌ نو بیع جائز ده وَلَهُ الْخِيَارُ إِذَا رَآهُ اوکله چې دا اوګوری.نو دده لپاره خیار ثابت دې إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ که غواړی.نو دا د پوره ثمن په عوض واخلی (وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ) اوکه غواړی.نو واپس دې کړی.

حل اللغة:- ①اشترى،، واخستلو② ير وينى③ جيمع ټول④ الثمن قيمت

تشريح:- صورت دمسئلي دادي.كه يوسړي د كتلو نه بغيرڅه شئ واخستلو.نودا بيع زموږ په نيز جائز ده.خو مشترى چي كله دا شئ اوګوري.نوده ته به اختيار وي.كه غواړي.نودا به د پوره ثمن په عوض اخلي.اوكه غواړي.نو واپس دي كړي.

> وَقَالَ الشَّافِعِي: لَايَصِحُّ الْعَقْدُ أَصْلًا او امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دى.چه بالكل عقد صحيح نه دي لِأَنَّ الْمَبِيعَ مَجْهُولٌ خكه چي مبيع مجهول دي.

تشريح:- حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دى.چه په دې صورت كي دسره بيع جائز نه ده.د امام شافعي رحمه الله دليل دادي.چه مشترى كوم مبيع نه دي كتلي.نود مشترى په حق كي مبيع مجهول شو.اود مجهول مبيع بيع ټيك نه وي.په دې وجه د ليدلو نه بغير د اخستلو په صورت كي به بيع ټيك نه وي.

> وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبى كريم ﷺ قول دې مَنِ اشْتَرَى شَيْئًا چا چې د كتلو نه بغر څه شئ واخستلو لَمْ يَرَهُ فَلَهُ الْخِيَارُ إِذَا رَآهُ[1] نو كله چي دا اوګوري.دده لپاره خيار دي.

تشريح:- زموږ دليل دا حديث دي. «من إشترى شيئاً لم يره فله الخيار إذا رآه» يعنى كه د كتلو نه بغير ئې څه شئ واخستلو.نود كتلو نه روسته به مشترى ته خيارحاصل وي.داحديث په دې باب كي چونكه نص دې.په دې وجه به د معارض نه بغير دا نشي پريخودلې.اودا حديث د ناليدلى مبيع د بيع په جواز باندې دلالت كوي.په دې وجه به زموږ په نيز بيع جائز وي.اګرچه مبيع ئې نه وي كتلي.

❓دلته كي يوسوال دې.هغه داچه د حكيم بن حزام رضي الله عنه حديث «لاتبع ماليس عندك» د ذكر شوى حديث معارض دې.خكه چې د «لاتبع ماليس عندك» نه مراد دادې.چه كوم شئ تاسره موجود نه وي.يعنى مشترى دا نه وي كتلي.نودا مه خرڅوه.ددې حديث نه معلوميږي.كه مشترى مبيع نه وي كتلي.نو ددې خرڅول جائز نه دى.ددې خواب دادې.چه دا حديث د غيرمملوكه شئ د بيع په عدم جواز باندې دلالت كوي.د هغه شئ د بيع په عدم جواز باندې دلالت نه كوي.كوم چې ( د بائع مملوك وى خو) مشترى نه وي كتلې.او ددې مراد په تعين باندې قرينه پوره حديث دې. پوره حديث دادې. «أن حكيم بن حزام رضي الله عنه قال يارسول الله ﷺ أن الرجل يطلب مني سلعة ليس عندى فأبيعها منه ثم أدخل السوق فأستجيدها فاشتريها فأسلمها إليه فقال ﷺ لاتبع ماليس عندك» يعنى ،،حكيم بن حزام رضي الله عنه اووئيل.اې د الله رسوله ﷺ! يوكس مانه داسې سامان غواړي.كوم چې ماسره نه وي.نو آيا زه په ده خرڅ كړم.چه بيا بازارته داخل شم.اعلى سامان واخلم.او ده ته ئې حواله كړم.په دې باندې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.كوم شئ چي تاسره نه وي.ته هغه مه خرڅوه،،دې پوره واقعې نه معلوميږي.چه حكيم بن حزام رضي الله عنه د داسې شئ د خرڅولو په اړه كي پوښتنه كړې وه.كوم چې دده په ملك كي نه وو.نود رسول الله ﷺ د اړخه خواب هم د سوال مطابق د داسې شئ په اړه كي وي.كوم چې د حكيم بن حزام رضي الله عنه په ملك كي نه وي. ددې خبرې متعين كاوه نه روسته دحكيم بن حزام حديث «لاتبع ماليس عندك» په هدايه كي د ذكرشوى حديث «من إشترى شيئاً لم يره» معارض نه جوړيږي.

> وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ بِعَدَمِ الرُّؤْيَةِ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ، او خكه چي د نه كتلو جهالت داسې نه دي.چه جګړې پورې اورسيږي لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يُوَافِقْهُ خكه كه مبيع د مشترى د خوښې موافق نه وي يَرُدُّهُ، نودا دې واپس كړي. فَصَارَ كَجَهَالَةِ الْوَصْفِ فِي الْمُعَايَنِ الْمُشَارِ إِلَيْهِ نودا په معاين مشاراليه كي د مجهول وصف پشان شو.

حل اللغة:- ①الروية،، ليدل② المنازعة،، جګړه③ المعاين،، چه ليدې شي④المشار اليه،،چه اشاره ورته كيږي

(۱) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه مسنداً أخرجه الدارقطني في سننه (۴/۳) رقم ۱۰)_



تشريح:- زموږ د اړخه عقلي دليل دادې.چه مشترى چونكه د خپل اختيار لاندې بيع واپس كوي.په دې وجه د نه كتلو جهالت ،، مفضى الى المنازعه،، نه دې.اوكوم جهالت چه،، مفضى الى المنازعه،، نه وي.هغه مفسد د بيع نه وي.په دې وجه د مشترى مبيع په نه كتلوسره بيبيع نه فاسد يږي.اودا داسې ده.لكه مثلاً يوكس د غنمو يو ډيرى واخستلو.كوم چې د سترګو اوړاندې دې.او مشاراليه دې.خودا معلومه نه ده.چه واړه غنم څومره دى.نود غنمو مقدار اګرچه مجهول دې.خوچونكه دا جهالت،، مفضى الى المنازعه،، نه دې.په دې وجه به په دې صورت كي بيع فاسد نه وي.دغه ډول د ناليدلې څيزبيع اګرچه د مجهول بيع ده.خود،، مفضى الى المنازعه،، نه كيدلو په وجه جائز ده.

> وَكَذَا إِذَا قَالَ رَضِيتُ اوهم دغه ډول كه مشترى اووئيل.چه زه راضى شوم ثُمَّ رَآهُ بيا ئې مبيع اوكتلو لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ نودده لپاره ددې د واپس كاوه اختيار شته لِأَنَّ الْخِيَارَ مُعَلَّقٌ بِالرُّؤْيَةِ خكه چي خيار د مخكنى رؤيت په وجه كتلو باندې معلق دې لِمَا رَوَيْنَا فَلَا يَثْبُتُ قَبْلَهَا په دې وجه به د كتلو نه وړاندې خيار نه ثابتيږى.

حل اللغة:- ① رضيت،، زه راضى يم ②الخيار،، اختيار③ يثبت ثابتيږى④قبل وړاندې

تشريح:- په دې عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله فرمائى.كه مشترى مبيع د كتلو نه بغيرداسې اووئيل.چه زه په مبيع باندې راضى يم.او بيا ئې مبيع اوكتلو.نوبيا به هم د مشترى لپاره خيارثابت وي.اود بيع واپس كاوه اختياربه حاصل وي.خكه چې حديث «من إشترى شيئاً لم يره فله الخيار إذا رآه» كي خيار په رؤيت باندې معلق دې.اوكوم شئ چې په بل شئ باندې معلق وي.داد هغې نه وړاندې نه ثابتيږي.په كوم چې معلق وي.په دې وجه به د رؤيت نه وړاندې د مشترى لپاره خيارثابت نه وي.اوهركله چې د رؤيت نه وړاندې خيارثابت نشو.نود رؤيت نه وړاندې په «رضيت» وئيلو سره دده خيارهم نه ساقطيږى.

> وَحَقُّ الْفَسْخِ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ بِحُكْمِ اود فسخ كولوحق ده ته ددې حكم په وجه دې أَنَّهُ عَقْدٌ غَيْرُ لَازِمٍ چې عقد غيرلازم دې لَا بِمُقْتَضَى الْحَدِيثِ د حديث د مقتضى په وجه نه دې.

تشريح:- په دې عبارت سره د يوسوال خواب دې.سوال دادې.چه د كتلو نه بغيرد مبيع اخستلو په صورت كي كه مشترى ته د رؤيت نه وړاندې خيار حاصل نشي.نوده ته د رؤيت نه وړاندې د بيع فسخ كاوه اختيار هم كيدل نه دي پكار.خكه چې بيع فسخ كول هم د خيار د ثبوت نتيجه ده.حالانكه د رؤيت نه وړاندې مشترى ته د بيع فسخ كاوه پوره پوره اختيار حاصل وي.نو ثابته شوه.چه د رؤيت نه وړاندې مشترى لپاره خيار حاصليږى.خواب دادې.چه د رؤيت نه وړاندې د مشترى لپاره د عقدبيع فسخ كولوحق د هغه خيار په وجه نه دې.دكوم چې په حديث «من إشترى شيئا» تقاضا كوى.بلكه دا حق خكه دې.چه د خيار رؤيت په وجه عقدبيع نه دې لازم شوې.او غيرلازم عقد هر وخت فسخ كيدلې شي.

> وَلِأَنَّ الرِّضَا بِالشَّيْءِ قَبْلَ الْعِلْمِ بِأَوْصَافِهِ لَا يَتَحَقَّقُ او خكه چې د يوڅيز د اوصاف معلوميدلو نه وړاندې په دې باندې راضى كيدل نه متحقق كيږى. فَلَا يُعْتَبَرُ قَوْلُهُ رَضِيتُ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ په دې وجه دكتلو نه وړاندې به دده د قول ،،رضيت،، اعتبار به نه كيږى بِخِلَافِ قَوْلِهِ رَدَدْتُ په خلاف د قول دده چه،، رددت،، (چې دا به معتبر وى).

حل اللغة: ① اوصاف،، جمع د وصف ،صفت②يتحقق،، ثابتيږى③يعتبر،، معتبرولې شى④رددت ما رد كړو

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه د يوڅيز اوصاف معلوميدلو نه وړاندې په دې باندې راضى كيدل نه متحقق كيږى.نو د كتلو نه وړاندې دا وئيل.چه زه راضى شوم.معتبر نه دى.خو كه ده اووئيل.چه ما بيع ردكړله.نودا رد كول معتبر دى.خكه چې د رد كاوه لپاره د اوصاف معدوم كيدل ضرورى نه دى.

## په نالیدلي څیز کښې خیار رؤیت

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ مَا لَمْ يَرَهُ فرمائي. که یوکس داسې شئ خرڅ کړو. کوم چې ده نه وو کتلې فَلَا خِيَارَ لَهُ نو ده ته خیار نشته وَكَانَ أَبُو حَنِيفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا لَهُ الْخِيَارُ اعْتِبَارًا بِخِيَارِ الْعَيْبِ وَخِيَارِ الشَّرْطِ او ابوحنیفه رحمه الله به په خیار عیب او خیارشرط باندې قیاس کاوه سره مخکې فرمائیل چه ته خیار حاصل دې.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې. که یوکس د کتلو نه بغیر څه شئ خرڅ کړلو. په دې طریقه چې د یوڅیز وارث شو. اود کتلو نه وړاندې ئې داخرڅ کړلو. نودا بیع ټیک ده. خو زموږ په نیز د بائع لپاره خیار رؤیت نه ثابتیږي. دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د ړومبي قول مطابق بائع ته خیار حاصل دې. خو روسته ئې ددې قول نه رجوع کړې وه. اود عدم جواز قائل شوې وو.

د ړومبي قول دلیل په خیارعیب اوخیارشرط باندې قیاس دې. یعنی لکه څنګه چې بائع ته خیارعیب او خیارشرط حاصل دې. دغه ډول خیار رؤیت به هم حاصل وي. خیار عیب په دې طریقه حاصل دې. که بائع ثمن خراب اوموندلو. نو بائع ته اختیار وي. چه دې ددې ثمن په عوض کې بیع جائز کړي. یا ئې واپس کړي. لکه څنګه چې مشتري که مبیع عیب داره بیاموني. نوده ته اختیار وي. خو دومره توپیر ضرور شته. چه د بائع ثمن واپس کاوه سره عقد بیع نه فسخ کیږي. اود مشتري مبیع واپس کاوه سره عقدبیع فسخ کیږي. ځکه چې په عقدبیع کې مبیع اصل وي. ثمن اصل نه وي.

وَهَذَا لِأَنَّ لُزُومَ الْعَقْدِ بِتَمَامِ الرِّضَا اودا ځکه چې د عقد لازمیدل په پوره رضامندئ باندې (موقوف) دي وَالزَّوَالُ بِهِ ثابِتًا په ختمولو کې هم او په ثابتې (منعقد) کاوه کې هم وَلَا يَتَحَقَّقُ ذَلِكَ او پوره رضامندي نه متحقق کیږي إِلَّا بِالْعِلْمِ بِأَوْصَافِ الْمَبِيعِ، مګر د مبیع اوصاف معلومیدلو سره وَذَلِكَ بِالرُّؤْيَةِ اود مبیع د اوصافو علم په کتلو سره کیږي فَلَمْ يَكُنِ الْبَائِعُ رَاضِيًا بِالزَّوَالِ په دې وجه به بائع د مبیع په ختمولو باندې راضي نه وي.

حل اللغة:- ① تمام،، پوره کیدل ② المبیع،، دخرڅ څیز ③ الزوال ختمیدل ④ الرویة،، لیدل

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه د بائع لپاره خیار رؤیت ثابتیدل، په دې وجه هم دي. چه عقدبیع به هغه وخت لازم وي. چه کله بائع په خپل ملك زائل کولوباندې او مشتري د خپل ملك ثابتولو باندې راضي وي. اودا رضامندي هغه وخت متحقق کیدلې شي. چه کله عاقدینو ته د مبیع په ټولو اوصافو باندې علم وي. اود مبیع په ټولو اوصافو باندې علم په کتلو سره متحقق کیږي. ځکه چې په کتلوسره په کومو باریکو باندې خبریدلې شي په بیانولو سره هغې باندې نشي خبریدلې. نو بائع چونکه مبیع نه دې کتلې. په دې وجه به ده ته د مبیع د اوصافو علم هم حاصل نه وي. او هرکله چې بائع ته د مبیع د اوصافو علم حاصل نشو. نو بائع به په مبیع باندې د خپل ملك په زائل کاوه باندې هم په پوره طریقه راضي نه وي. او هرکله چې د بائع رضامندي اونه موندې شوه. نوعقد بیع هم لازم نشو. اود عقدبیع نه لازم کیدلو په صورت کې د فسخ اختیار حاصل وي. په دې وجه بائع ته د کتلو نه بغیر د خرڅولو په صورت کې د بیع فسخ کاوه اختیار وي.

وَجْهُ الْقَوْلِ الْمَرْجُوعِ إِلَيْهِ او کوم قول اړخ ته رجوع شوې ده. أَنَّهُ مُعَلَّقٌ بِالشِّرَاءِ هغې وجه داده. چه خیار رؤیت په اخستلو باندې معلق دې لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړې دي. فَلَا يَثْبُتُ دُونَهُ په دې وجه د اخستلو نه بغیر به خیار رؤیت نه ثابتیږي.

حل اللغة:- ① المرجوع الیه،، چه رجوع ورته شوې وي ② معلق،، تړلې شوې ③ سیما،، خاص کړ ④ الشراء،، اخستل

تشریح:- امام ابوحنیفه رحمه الله چې کوم قول اړخ ته رجوع کړې ده. د هغې دلیل دادې. چه خیار رؤیت د حدیث «من اشترى شيئا لم يره فله الخيار» په وجه په شراء باندې معلق دې. په دې وجه به د شراء نه بغیرخیار رؤیت نه ثابتیږي. او شراء (اخستل) چونکه د مشتري د اړخه موجودیږي. د بائع د اړخه نه موجودیږي. په دې وجه به خیار رؤیت د مشتري لپاره ثابت وي. د بائع لپاره به نه ثابتیږي.



رُوِيَ أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ بَاعَ أَرْضًا لَهُ بِالْبَصْرَةِ مِنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ او نقل دي. چه عثمان بن عفان رضي الله عنه خپله یوه مځکه کومه چې په بصره کې واقع وه. د طلحه بن عبدالله رضي الله عنه په لاس خرڅه کړله. فَقِيلَ لِطَلْحَةَ: إِنَّكَ قَدْ غُبِنْتَ، نو حضرت طلحه رضي الله عنه ته اووئیلې شو. چه تاته نقصان اوشو فَقَالَ: لِيَ الْخِيَارُ نو طلحه رضي الله عنه اووئیل چه ماته اختیار دې لِأَنِّي اشْتَرَيْتُ مَا لَمْ أَرَهُ ځکه چې ما داسې شئ اخستې دې. کوم چې ما نه دې لیدلې.

حل اللغة:- ① ارض،، مځکه ② غبنت،، تا تاوان اوکړو ③ الخیار،، اختیار ④ اشتریت ما اخستې

تشریح:- د،، مرجوع الیه،، قول تائید ددې واقعې نه هم کیږي. کومه چې امام طحاوي او امام بیهقي رحمه الله د علقمه بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روایت کړې ده. واقعه داده. چه حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه خپله یوه مځکه کومه چې په بصره کې واقع وه. په حضرت طلحه بن عبیدالله رضي الله عنهما باندې خرڅه کړله. حضرت طلحه رضي الله عنه ته اووئیلې شو. چه تاته نقصان اوشو. حضرت طلحه رضي الله عنه چې دا واوریدل. نو وې فرمائیل. چه ماته څه اختیار حاصل دې. ځکه چې د کتلو نه بغیر مځکه اخستې ده.

وَقِيلَ لِعُثْمَانَ: إِنَّكَ قَدْ غُبِنْتَ، حضرت عثمان رضي الله عنه ته اووئیلې شو. چه تاته نقصان اوشو فَقَالَ: لِيَ الْخِيَارُ نو وې فرمائیل. چه ماته خیار حاصل دې لِأَنِّي بِعْتُ مَا لَمْ أَرَهُ ځکه چې ما داسې شئ خرڅ کړو. چه ما نه دې لیدلې فَحَكَّمَا بَيْنَهُمَا جُبَيْرَ بْنَ مُطْعِمٍ نو دواړو جبیر بن مطعم رضي الله عنه خپل منځ کې حکم مقرر کړو فَقَضَى بِالْخِيَارِ لِطَلْحَةَ نو جبیر بن مطعم رضي الله عنه د طلحه رضي الله عنه لپاره د خیار فیصله اوکړله وَكَانَ ذَلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم (1) اودا فیصله د صحابه کرامو رضي الله عنهم په موجودګئ کې وه.

تشریح:- او حضرت عثمان رضي الله عنه ته اووئیلې شو. چه تاته نقصان شوې دې. دوی اوفرمائیل. چه ماته اختیار حاصل دې. ځکه چې ما خپله مځکه د کتلو نه بغیر خرڅه کړې ده. نو دواړو حضراتو حضرت جبیربن مطعم رضي الله عنه حکم (ثالث) مقرر کړلو. نو حضرت جبیربن مطعم رضي الله عنه فیصله اوکړله. چه حضرت طلحه رضي الله عنه ته اختیار حاصل دې. اودا واقعه د صحابه کرامو رضي الله عنهم په موجودګئ کې راپیښه شوې وه. خوچا هم نکیر نه وو کړې. نو ګویا د صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې خبره باندې اجماع شوه. چه خیار رؤیت به مشتري ته حاصل وي. بائع ته به نه وي حاصل.

## د خیار رؤیت لپاره د وخت تعیین؟

ثُمَّ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ غَيْرُ مُؤَقَّتٍ بیا خیار رؤیت وخت سره متعین نه دې بَلْ يَبْقَى إِلَى أَنْ يُوجَدَ مَا يُبْطِلُهُ، بلکه پاته به پاتې وي. تردې چې څه داسې امر اوموندې شي. کوم چې دا باطل کړي وَمَا يُبْطِلُ خِيَارَ الشَّرْطِ مِنْ تَعَيُّبٍ أَوْ تَصَرُّفٍ او کوم عیب او تصرف چې خیار شرط باطل کړي يُبْطِلُ خِيَارَ الرُّؤْيَةِ هغه خیار رؤیت هم باطل کوي.

تشریح:- زموږ په نیز خیار رؤیت د هیڅ وخت سره محدود نه دې. بلکه هغه وخت پورې به پاته وي. چه ترکومه پورې څه داسې امر اونه موندې شي. چه دا باطل کړي. اګرچه د بعضو مشائخو مذهب دادې. چه خیار رؤیت د رؤیت مبیع نه روسته د امکان فسخ د وخت سره مؤقت او معین دې. یعنی که مشتري د رؤیت مبیع نه روسته په بیع فسخ کاوه باندې قادر شو. خو فسخ ئې نه کړله. نو دده خیار رؤیت به باطل وي. او عقد به لازم وي. بهرحال مختار مذهب هم دادې. چه خیار رؤیت د هیڅ وخت سره محدود او مؤقت نه دې. بلکه د خیار مبطل (باطلونکې) موجودیدلو پورې به پاته وي. پاتې شوه داخبره چې مبطل څه شئ دې. نو په دې اړه کې ابو الحسین قدوري رحمه الله فرمائي. چه کوم شئ خیارشرط باطلوي. هغه خیار رؤیت هم باطلوي. مثلاً د مبیع عیب داره کیدل، او په مبیع کې تصرف کول.

---

(1) من حديث علقمة بن أبي وقاص رضي الله عنه أخرجه الطحاوي في شرح معاني الآثار (٢٠١/٢) والبيهقي في سننه الكبرى (٤٣٩/٥) رقم (١٠٤٢٤)_

أَمَّا إِنْ كَانَ تَصَرُّفًا لَا يُمْكِنُ رَفْعُهُ يا كه داسې تصرف وي، چه ددې ختمول ممكن نه وي كَالْإِعْتَاقِ وَالتَّدْبِيرِ لكه آزادول، او مدبر كول،

**حل اللغة** ① رفع، ختميدل ② الاعتاق آزادول ③ التدبير، مدبرجوړول ④ الرهن ګانړه

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي، چه په مبيع كې مطلق تصرف خيار رؤيت نه باطلوي، بلكه په دې كې څه قدرې تفصيل دې، كه مشتري په مبيع كې داسې تصرف اوكړو، چه ددې فسخ كول اوختمول ممكن پاتې نشي. مثلاً د كتلو نه بغير ئې غلام واخستلو او بيا ئې دا آزاد كړلو، يا ئې دا مدبر كړلو.

أَوْ تَصَرُّفًا يُوجِبُ حَقًّا لِلْغَيْرِ يا داسې تصرف وي، چه د بل حق واجبوي كَالْبَيْعِ الْمُطْلَقِ وَالرَّهْنِ وَالْإِجَارَةِ لكه بيع مطلق او رهن او اجاره يُبْطِلُهُ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ وَبَعْدَهَا نو دا به خيار رؤيت باطلوي. د رؤيت نه وړاندې هم، اود رؤيت نه روسته هم.

**تشريح:-** يا مشتري داسې تصرف اوكړلو، چه په دې سره د بل حق واجب شي. مثلاً يوڅيز ئې د كتلو نه بغير واخستلو، بيا ئې دا د خيارشرط نه بغير خرڅ كړلو، يا ئې د رؤيت نه وړاندې دا د بل چا سره رهن كيخودلو، ياني چاته په اجرت باندې وركړلو. نودا دواړه قسمه تصرفات د مبيع د رؤيت نه وړاندې هم خيار رؤيت باطلوي، اود مبيع كتلو نه روسته هم.

لِأَنَّهُ لَمَّا لَزِمَ خكه چې كله تصرف لازم شو تَعَذَّرَ الْفَسْخُ نو فسخ كول متعذر شو فَبَطَلَ الْخِيَارُ او خيار باطل شو.

**تشريح:-** دليل دادې، چه كله ددې تصرف كوم چې مشتري كړې دې. فسخ كول ناممكن شو. يا په دې تصرف سره د بل كس حق واجب شو. نود بيع فسخ كول متعذر شو. او هركله چې د بيع فسخ كول متعذر شو. نود مشتري خيار رؤيت هم باطل شو.

وَإِنْ كَانَ تَصَرُّفًا لَا يُوجِبُ حَقًّا لِلْغَيْرِ او كه داسې تصرف وي، كوم چې د غيرحق نه واجبوي كَالْبَيْعِ بِشَرْطِ الْخِيَارِ وَالْمُسَاوَمَةِ وَالْهِبَةِ مِنْ غَيْرِ تَسْلِيمٍ لكه خيارشرط سره خرڅول، نرخ كول، اود قبضه كاوه نه بغير هبه كول لَا يُبْطِلُهُ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ نودا د كتلو نه وړاندې خيار رؤيت نه باطلوي

**تشريح:-** او كه مشتري په بيع كې داسې تصرف اوكړلو. كوم چې د بل كس حق نه ثابتوي. مثلاً د كتلو نه بغير ئې يوڅيز واخستلو. بيا ئې دا په دې شرط سره خرڅ كړلو، چه د درې ورځو خيار دې. يا ئې د كتلو نه بغير د نرخ كاوه په طور باندې چاته وركړلو. يا ئې هبه كړلو. خوموهوب له ته ئې په قبضه كې ورنكړلو. نو په دې درې واړو صورتونوكې د مشتري د اړخه تصرف موجود شو. خوداسې تصرف موجود نشو. كوم چې د بل كس حق واجبوي. نوداسې قسمه تصرف د رؤيت نه وړاندې د مشتري خيار رؤيت نه باطلوي.

لِأَنَّهُ لَا يَرْبُو عَلَى صَرِيحِ الرِّضَا خكه چې دا تصرف د صريح رضامندۍ نه زيات نه دې وَيُبْطِلُهُ بَعْدَ الرُّؤْيَةِ اود كتلو نه روسته دا تصرف خيار رؤيت باطلوي لِوُجُودِ دَلَالَةِ الرِّضَا خكه چې دلالةً رضامندي اوموندې شوه.

**حل اللغة:-** ① يربو-زياتيږي ② صريح-ښكاره ③ الروية-ليدل ④ الرضا-رضا

**تشريح:-** دليل دا دې چې دا تصرف دلالةً رضامندي ده. صريحي رضا مندي نه ده او وړاندې تير شوي دي، چه د مبيع د رؤيت نه وړاندې صراحتاً رضامندي ښكاره كول سره خيار رؤيت نه باطليږي. نو هركله چې د رؤيت نه وړاندې په صريحي رضامندۍ سره خيار رؤيت نه باطليږي، نود رضا په دلالت سره په درجه اولى نه باطليږي. خود رؤيت نه روسته داسې قسمه تصرف خيار رؤيت باطلوي. خكه چې په دې صورت كې دلالةً رضامندي موجود شوه. اود مبيع كتلو نه روسته لكه څنګه چې په صريح رضامندۍ سره خيار رؤيت ساقطيږي. دغه ډول په دلالةً رضامندۍ سره هم ساقطيږي.



## د يوڅيز صرف په ظاهري نګل كتلو سره د خيار حكم

قَالَ: وَمَنْ نَظَرَ إِلَى وَجْهِ الصُّبْرَةِ فرمائي. اوكوم كس چې يو ډيرې د بره نه (سرسرى) اوكتلو أَوْ إِلَى ظَاهِرِ الثَّوْبِ مَطْوِيًّا يا ئې راغونډ تهان د پاسنۍ برخې (حصې) نه اوكتلو أَوْ إِلَى وَجْهِ الْجَارِيَةِ أَوْ إِلَى وَجْهِ الدَّابَّةِ يا ئې د وينځې مخ يا د خاروى مخ او وروناں لنډه (كوناتي) اوكتل وَكِفْلِهَا فَلَا خِيَارَ لَهُ نو دده لپاره به خيار رؤيت نه وي. وَالْأَصْلُ فِي هَذَا أَنَّ رُؤْيَةَ جَمِيعِ الْمَبِيعِ غَيْرُ مَشْرُوطٍ او په دې باب كې اصل دادې، چه د ټول مبيع كتل مشروط نه دي. لِتَعَذُّرِهِ. خكه چې دا متعذر دې فَيَكْتَفِي بِرُؤْيَةِ مَا يَدُلُّ عَلَى الْعِلْمِ بِالْمَقْصُودِ نود دومره كتل به كافي وي. كوم چې د مقصود په معلوميدلو باندې دلالت اوكړي.

**حل اللغة:-** ① وجه-مخ\پورته اړخ-② مطوي-راغونډه شوې-③ جارية-وينځه-④ الدابة-خاروي

**تشريح:-** دخيار رؤيت اثبات اود اسقاط په سلسله كې قاعده داده. كه مبيع شئ واحد دې. نود خيار رؤيت ساقطولو لپاره د پوره مبيع كتل شرط نه دي. خكه چې ډير خله د پوره مبيع كتل ناممكن وي. لكه مبيع كه غلام يا وينځه وي. نو ددوى پوره بدن كتلو لپاره ددوى شرمګاهونه او ددوى ستر عورت كتل هم ضروري وي. حالانكه دا شرعاً حرام دي. نو ثابته شوه، چه د پوره مبيع كتل متعذر دي. دغه ډول راواړه شوى او راغونډ پلنډه كولاوولو سره بائع ته ضرر وي. چه د پوره پلنډه تهې به كلاؤ شي. او واړه پلنډه به خراب شي. دغه ډول د ډيرى هره دانه كتل متعذر دي. نو هركله چې د پوره مبيع كتل متعذر دي. نود بيع دومره شئ كتل به كافي وي. چه په دې سره د مقصود علم حاصل شي.

وَلَوْ دَخَلَ فِي الْبَيْعِ أَشْيَاءُ، اوكه په بيع كې (د يوجنس) ډير شيان داخل وي فَإِنْ كَانَ لَا تَتَفَاوَتُ آحَادُهَا نو كه ددې افراد متفاوت نه وي كَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ، لكه كيلي او وزني شيان وَعَلَامَتُهُ أَنْ يُعْرَضَ بِالنَّمُوذَجِ، او ددې علامت دادې، چه د نمونې په طور پيش كولاى شي يَكْتَفِي بِرُؤْيَةِ وَاحِدٍ مِنْهَا نو په دې كې به د يو شئ كتل كافي وي إِلَّا إِذَا كَانَ الْبَاقِي أَرْدَأَ مِمَّا رَأَى خو چه كله پاتې د كتلي شوي نه ډير ادنى (معمولى) وي فَحِينَئِذٍ يَكُونُ لَهُ الْخِيَارُ نو په دې صورت كې به مشتري لپاره خيار رؤيت حاصل وي.

**حل اللغة:-** ① يتفاوت-مختلف كيږي-② النموزج-نمونه-③ يكتفي-اكتفاء كولې شي-④ الخيار-اختيار

**تشريح:-** اوكه مبيع متقارب الآحاد يعني ګنړاويوشان شيان وي يعني ددې افراد اوآحاد به په ماليت او قيمت كې متقارب وي. اود متقارب پيژنګلودا ده كه يوڅيز د نمونې اود سيمپل په طور پيش كولې شي. نودا شيان متقارب الآحاد دي. لكه مثلاً مكيلي او موزوني شيان (ځيزونه)، يا عددي متقارب لكه مثلاً غوزان، اود چرګو هګۍ. د مصنف رحمه الله د بيان مطابق دخيار رؤيت ساقطولو لپاره په دې كې د يو كتل كافي دي. خكه چې د يو په كتلو سره د عدم تفاوت په وجه د پاته اوصاف هم معلوميږي. خو كه پاته مبيع د كتلې شوې نمونې (سيمپل) نه ډير خراب وي. نو په دې صورت كې به مشتري لپاره خيار رؤيت حاصل وي.

وَإِنْ كَانَ تَتَفَاوَتُ آحَادُهَا او كه ددې اشياء افراد متفاوت وي كَالثِّيَابِ وَالدَّوَابِّ لكه كپړې، او خاروى لَا بُدَّ مِنْ رُؤْيَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهَا نو په دې كې د هر يو كتل ضروري دي وَالْجَوْزُ وَالْبَيْضُ مِنْ هَذَا الْقَبِيلِ فِيمَا ذَكَرَهُ الْكَرْخِيُّ، او غوزان اود چرګو هګۍ هم د كرخي د بيان مطابق ددې ډول څنې دي وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يَكُونَ مِثْلَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ مناسب خودا وو، چه د غنمو او اوربشو پشان وي. لِكَوْنِهَا مُتَقَارِبَةً خكه چې ددې افراد قريب قريب دي.

**حل اللغة:-** ① الثياب-جمع د ثوب، جامه-② الدواب-جمع د دابة، خاروې-③ الجوز-غوز-④ البيض-هګۍ ⑤ الحنطة-غنم-⑥ الشعير-اوربشه-⑦ الصبرة-ډيرې-⑧ البقية-باقي\نور

**تشريح:-** او كه مبيع متعدد متفاوت الآحاد وي. يعني ګنړ وي او د يو بل نه مختلف وي او د متفاوت پيژندګلودا ده چې د د نمونې په طور نشي پيش كولې لكه مثلاً د كپړو تان، او خاروى. نو په دې ګنړو ځيزونوكې د هريو كتل ضروري دي. خكه چې د افراد او آحاد د تفاوت په وجه د يو فرد په كتلو سره د پاته اوصاف نشي معلوميدلې. په

دي وجه به د هر هر فرد کتل ضروري وي. اود امام کرخي رحمه الله د بیان مطابق غوزان اود چرګو هګۍ هم د دي قبیلي څنې دي.

إِذَا ثَبَتَ هَذَا هر کله چي دا اصل ثابت شو فَنَقُولُ: اَلنَّظَرُ إِلَى وَجْهِ الصُّبْرَةِ كَافٍ نو مونږ وایو چه د ډیر دپاس نه کتل کافي دي لِأَنَّهُ يُعْرَفُ وَصْفُ الْبَقِيَّةِ، ځکه چي د پاته وصف ددي نه معلومیږي لِأَنَّهُ مَكِيلٌ يُعْرَضُ بِالنَّمُوذَجِ ځکه چي دا مکیلي شئ دي چه د نموني په طور پیش کولي شي.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي چه ددي قاعدي ثابتیدلو نه روسته مونږ وایو چه د غلي ډیري د پاس نه کتل کافي دي یعني که مشتری د غلي ډیري د پاس نه اوکتلو او واني خستلو نو دده لپاره به خیار رؤیت ثابت نه وي ځکه چي غله یو مکیلي شئ دي د نموني او سیمپل په طور پیش کولي شي په دي وجه د ډیري د بره برخه په کتلو سره د پاته غلي وصف هم معلومیدلي شي.

وَكَذَا النَّظَرُ إِلَى ظَاهِرِ الثَّوْبِ او هم دغه ډول تهان دپاس نه کتل، ددي قبیل څنې دي مِمَّا يُعْلَمُ بِهِ الْبَقِيَّةُ چي ددي نه د پاته وصف معلومیږي إِلَّا إِذَا كَانَ فِي طَيِّهِ مَا يَكُونُ مَقْصُودًا خو کله چي ددي په منځ کي داسي شئ وي چه مقصود وي كَمَوْضِعِ الْعَلَمِ لکه د نقش ونګار ځائي.

حل اللغة:- ① طي-منځ-② موضع-ځائي-③ الکفل-ورون -④ القوائم-لاسونه او پښي

تشریح:- دغه ډول د پلنډه د پاس نه کتل کافي دي چه په دي سره د پاته پلنډه وصف معلومیدلي شي خو که په پلنډه کي دننه داسي څه شئ وي چه هغه د مشتری مقصود وي مثلاً مشتری د ګل کاریٔ اود نقش ونګار په وجه پلنډه واخستلو نو په داسي صورت کي د پلنډه د پاس برخه به کتل کافي نه وي بلکه دننه کتل به هم ضروري وي.

وَالْوَجْهُ هُوَ الْمَقْصُودُ فِي الْآدَمِيِّ، او په سړی کي مخ مقصود دي وَهُوَ الْكَفَلُ فِي الدَّوَابِّ او په ځاروو کي مخ او ورونان لنډه (کوناټي) مقصود دي فَيُعْتَبَرُ رُؤْيَةُ الْمَقْصُودِ نود مقصود کتل به معتبر وي وَلَا يُعْتَبَرُ رُؤْيَةُ غَيْرِهِ اود مقصود نه علاوه کتل به معتبر نه وي وَشَرَطَ بَعْضُهُمْ رُؤْيَةَ الْقَوَائِمِ اود بعض ځاروو لاس او پښي کتل هم شرط کړي شوی دي وَالْأَوَّلُ هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او رومبي قول د ابویوسف رحمه الله نه نقل دي.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي چه په سړی کي مخ مقصود دي پاته واړه اندامونه ددي تابع دي هم دا وجه ده که د دوي (دوه) غلامانو په ټولو اندامونوکي برابر والیٔ وي اود دواړو مخونه متفاوت وي نو ددوی قیمتونه به هم متفاوت وي نوکه د یو غلام یا وینځي مخ ني اوکتلو او واني خستلو نو مشتری ته به خیار رؤیت حاصل نه وي اوکه ددوی واړه اندامونه ني اوکتل خو مخ ني اونه کتلو نود مشتری خیار رؤیت به پاته وي او په ځاروو کي چونکه مخ او ورونان دواړه مقصود وي په دي وجه به خیار ساقط وي حاصل داچه د خیار رؤیت په ساقطولوکي د مقصود رؤیت معتبر نه دي د بعض مشائخو رحمهم الله خیال دي چه په ځاروو کي د مخ او پتونانو نه علاوه ددوی لاسونه او پښي کتل هم شرط دي ځکه چي په ځاروو کي لاسونه او پښي هم مقصود وي رومبي قول ( یعنی د مخ او پتونانو کافي کیدل ) د حضرت امام ابویوسف رحمه الله روایت دي.

وَفِي شَاةِ اللَّحْمِ لَا بُدَّ مِنَ الْجَسِّ اود غوښي په وزه کي په لاس سره معلومول ضروري دي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ وَهُوَ اللَّحْمُ ځکه غوښه چي مقصود ده. يُعْرَفُ بِهِ هم په دي سره پیژندلي شي ۞ فِي شَاةِ الْقِنْيَةِ لَا بُدَّ مِنْ رُؤْيَةِ الضَّرْعِ او په پالونکي وزه کي د تهنیو کتل ضروري دي.

حل اللغة ① شاة -وزه -① اللحم-غوښه-② الحبس-بندیدل-③ القنیة-پاللي شوي ⑤ الضرع-غولانځه-⑥ الذوق-څکل-④ المعرف-خودونکي-⑧ یعطم-چه خوړلي شي

تشریح:- او که وزه د غوښي په وجه د ذبح کاوه لپاره واخستلي شوه نوددي د لاس په اندازه سره کتل ضروري دي ځکه چي غوښه کوم چي اصل مقصود دي په دي طریقه پیژندلي شي چه دي کي وازګه ډیره ده او غټه پټه



ده او که بالکل مانده او بې کاره ده او که وزه د افزائش نسل اود پیو لپاره اخستلي شوي ده نو ددي تهیونه کتل ضروري دي ځکه چي په دي کي تهیونه مقصود وي.

وَفِيمَا يُطْعَمُ لَا بُدَّ مِنَ الذَّوْقِ اود خوراك په څیزونوکي څښل ضروري دي لِأَنَّ ذَلِكَ هُوَ الْمُعَرِّفُ بِالْمَقْصُودِ ځکه چي څښل د مقصود نه خبرونکي دي.

تشریح:- او کوم شئ چي خوړلي شي په هغي کي څښل ضروري وي ځکه چي په دي کي کوم شئ مقصود دي هغه په کتلو سره معلومیږي.

## د کور صحن، یا د بهرنه کتل، یا د بهر نه په باغ کتلو سره د خیار رؤیت حکم

قَالَ وَإِنْ رَأَى صَحْنَ الدَّارِ فَلَا خِيَارَ لَهُ فرمائي او که د کور غولي (صحن) ني اوکتلو نود مشتری لپاره خیار رؤیت پاتي نشو وَإِنْ لَمْ يُشَاهِدْ بُيُوتَهَا کرچه ددي کمرې ني نه وي کتلي وَكَذَلِكَ إِذَا رَأَى خَارِجَ الدَّارِ او هم دغه ډول که کور ني د بهر نه اوکتلو أَوْ رَأَى أَشْجَارَ الْبُسْتَانِ مِنْ خَارِجٍ یاد باغ وني ني د بهر نه اوکتلي.

حل اللغة ① صحن-انګړ-② اشجار-جمع د شجر، ونه-③ بیوت-جمع د بیت ، کمره-④ بستان-باغ

تشریح:- صورت د مسئلي دادي که یوسړی د کور غولي (صحن) اوکتلو خو ددي کوټي ني اونه کتلي یا کور ني د بهر نه اوکتلو یا ني د باغ وني د بهرنه اوکتلي او بیا ني واخستلو نود مشتري لپاره به خیار رؤیت نه وي ځکه چي د مکان یا باغ هرهر جزء کتل متعذر دي په دي وجه د مقصود رؤیت د کُل قائم مقام ګرځي او خیار رؤیت ساقطیږي.

وَعِنْدَ زُفَرَ لَا بُدَّ مِنْ دُخُولِ دَاخِلِ الْبُيُوتِ[1] اود امام زفر رحمه الله په نیز کمرو ته دننه داخلیدل ضروري دي وَالْأَصَحُّ أَنَّ جَوَابَ الْكِتَابِ عَلَى وِفَاقِ عَادَتِهِمْ فِي الْأَبْنِيَةِ، او اصح داده چه د کتاب حکم د کورونو په سلسله کي ددوی دعادت مطابق دي فَإِنَّ دُورَهُمْ لَمْ تَكُنْ مُتَفَاوِتَةً يَوْمَئِذٍ ځکه چي ددوی کورونه به ددوی په زمانه کي متفاوت نه وو.

حل اللغة:- ① جواب-حکم-② وفاق-موافق-③ دور-جمع د دار، کور-④ متفاوتة-مختلف

تشریح:- حضرت امام زفر رحمه الله فرمائي چه د کور اخستلو په صورت کي د خیار رؤیت ساقطولو لپاره په ټولو کمرو او کوټوکي داخلیدل ضروري دي.

علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. صحیح خبره داده چه په قدوري کي کوم حکم ذکر دي دا د عمارتو( کورونو) په سلسله کي د کوفي اود بغداد د خلکو د عادت مطابق ورکړي شوي دي ځکه چي په هغه زمانه کي د هغوی کورونه متفاوت نه وو لکه څنګه به چي د بهر اړخ نه وو هم هغه شان به دننه هم وو.

فَأَمَّا الْيَوْمَ فَلَا بُدَّ مِنَ الدُّخُولِ فِي دَاخِلِ الدَّارِ لِلتَّفَاوُتِ، او پاتي شو نن صبا، نو( په دي زمانه کي ) د تفاوت په وجه کورکي دننه داخلیدل ضروري دي وَالنَّظَرُ إِلَى الظَّاهِرِ لَا يُوقِعُ الْعِلْمَ بِالدَّاخِلِ اود بهر کتلو نه د دننه علم نه حاصلیږي.

تشریح:- خو نن صبا چي کوم کورونه جوړولي شي ددي د بهر او دننه په برخه کي د مالیت په اعتبار سره ډیر لوي تفاوت وي په دي وجه د بهر برخه کتلو سره د دننه اړخ علم نه کیږي او هرکله چي د بهر برخه په کتلوسره د دننه اړخ علم نه کیږي نو په کمروکي دننه داخلیدل او هره اطاق به کتل ضروري وي حاصل داچه نن سهار د امام زفر رحمه الله په قول باندي فتوی ده.

## د وکیل کتل د مشتري کتل دي

قَالَ وَنَظَرُ الْوَكِيلِ كَنَظَرِ الْمُشْتَرِي فرمائي اود وکیل کتل د مشتري د کتلو پشان دي حَتَّى لَا يَرُدَّهُ إِلَّا مِنْ عَيْبٍ، تردي

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول زفر رحمه الله كذا فى الدرالمختار(٧٤\١٤) وفتح القدير(٥٣٨\٥) و درالمنتقى (٣٧\٢) والدرالمختار (٧٤\١٤) وردالمحتار(٧٤\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٢\٢)-

چي دا نشي واپس كولي.مګر د عيب په وجه. وَلَايَكُونُ نَظَرُ الرَّسُولِ كَنَظَرِ الْمُشْتَرِي، اود قاصد كتل د مشتري د كتلو ښان نه دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ [1] اودا د امام ابوحنيفه ﷫ په نيز دي.

**حل اللغة:-** ①نظر-كتل-②الرسول-قاصد-③سواء-برابر-④تسقط-ساقطوي

**تشريح:-** صورت د مسئلي دادي.كه مشتري د كتلو نه بغير څه شي؛ واخستلو.بيا ئې بل څوك په مبيع باندې د قبضه كاوه وكيل جوړ كړلو.مثلاً داني اووئيل.چه ته زما د اړخه په مبيع باندې د قبضه كاوه لپاره وكيل جوړ شه.يا ته ما په مبيع باندې د قبضه كاوه وكيل مقرر كړلې.نو هركله چې دا وكيل مبيع اوګوري.نو دده په كتلوسره د مشتري خيار رؤيت ختميږي.لكه څنګه چې پخپله د مشتري په كتلوسره خيار رؤيت ساقطيږي.او هركله چې د مشتري خيار رؤيت ساقط شي.نو مشتري ته به د خيار رؤيت په وجه د مبيع واپس كاوه اختيار نه وي.خو كه په مبيع كې څه عيب ښكاره شو.نود خيار عيب په وجه واپس كولې شي.او كه مشتري څوك په مبيع باندې د قبضه كاوه لپاره قاصد مقرر كړلو.مثلاً داسې ئې اووئيل.چه ته زما د اړخه په مبيع باندې د قبضه كاوه لپاره قاصد شه.يا ته ما په مبيع باندې د قبضه كاوه لپاره قاصد مقرر كړلې.يا فلانى يعنى بائع ته لاړشه.او اووايه.چه هغه مبيع تاته دركړي.نو هركله چې دا قاصد مبيع اوګوري.نو دده په كتلو سره د مشتري خيار رؤيت نه ساقطيږي.داحكم د امام اعظم ابوحنيفه ﷫ په نيز دي.

وَقَالَا: هُمَا سَوَاءٌ او صاحبين ﷬ فرمائي.چه قاصد او وكيل دواړه برابر دي وَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ او مشتري ته د واپس كاوه اختيار دي) قَالَ مَعْنَاهُ الْوَكِيلُ بِالْقَبْضِ، مصنف ﷫ فرمائي.چه د وكيل نه مراد د قبضه كاوه وكيل دي. فَأَمَّا الْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ فَرُؤْيَتُهُ تُسْقِطُ الْخِيَارَ بِالْإِجْمَاعِ او پاتې شو د اخستلو وكيل،نو دده كتل بالاجماع خيار رؤيت ساقطوي.

**تشريح:-** او صاحبين ﷬ فرمائي.چه د وكيل او قاصد دواړو يو حكم دي.يعنى د قاصد په كتلوسره بالاتفاق د مشتري خيار رؤيت نه ساقطيږي.اود وكيل كتل د قاصدد كتلو ښان دي.نو وكيل اوقاصد دواړو چې كله د قبضه په وخت مبيع اوكتلو.نو په دواړه صورتونو كې د مشتري خيار رؤيت نه ساقطيږي.نود مشتري خيار رؤيت په نه ساقطيدلو كې وكيل اوقاصد دواړه برابر دي.او هركله چې د دواړو په كتلو سره د مشتري خيار رؤيت نه ساقطيږي.نو هركله چې مشتري دا مبيع اوګوري.نو مشتري ته به د مبيع واپس كاوه پوره پوره اختيار وي.

علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه په متن كې د وكيل نه د قبضه كاوه والا وكيل مراد دي.او پاتې شو وكيل بالشراء،نو دده رؤيت بالاجماع خيار رؤيت ساقطوي.بلكه د وكيل بالشراء په صورت كې خيار رؤيت وغيره د وكيل لپاره ثابتيږي.د موكل لپاره نه ثابتيږي.نوكه موكل مبيع اوګوري.اودا واپس كول اوغواړي.نو واپس كولې شي.خكه چې دعقد بيع حقوق وكيل بالشراء اړخ ته واپس كيږي.موكل اړخ ته نه واپس كيږي.

لَهُمَا أَنَّهُ تَوَكَّلَ بِالْقَبْضِ د صاحبينو ﷬ دليل دادې.چه د قبضه وكيل صرف د قبضه كاوه وكيل دې دُونَ إِسْقَاطِ الْخِيَارِ فَلَا يَمْلِكُ مَا لَمْ يَتَوَكَّلْ بِهِ د خيار ساقطولو( وكيل) نه دې.نود كوم شئ چې دې وكيل نه دې.د هغې مالك به هم نه وي وَصَارَ كَخِيَارِ الْعَيْبِ وَالشَّرْطِ وَالْإِسْقَاطِ قَصْدًا اودا داسې شوه.لكه خيار عيب، خيارشرط او په قصد سره خيار ساقطول.

**تشريح:-** د صاحبينو ﷬ دليل دادې.چه د قبضه وكيل صرف په مبيع باندې د قبضه كاوه لپاره مقرر وي.د مشتري خيار رؤيت ساقطولو لپاره مقرر نه وي.او وكيل چې د كوم كار وكيل نه وي.دې د خپل وكالت لاندې په دې كې تصرف هم نشي كولې.په دې وجه وكيل بالقبض د مشتري خيار رؤيت ساقطولو مالك او اختيارمند هم نه دې.اودا داسې ده.لكه مثلاً يوكس څه شئ؛ واخستلو.بيا ئې څوك په مبيع باندې د قبضه كاوه وكيل مقرر كړلو.وكيل په مبيع باندې په داسې حال كې قبضه اوكړله.چه ده ته په دې كې عيب ښكاري.نود وكيل په مبيع كې د عيب كتلو

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في تبيين الحقائق (۲۸\۴) نقلاً عن القول الراجح(۲۳\۲)_



او قبضه كاوه باوجود،د مشتري خيار عيب نه ساقطيږي.اولكه مثلاً يوكس په خيارشرط سره څه سامان واخستلو.بيا ئې څوك د قبضه كاوه وكيل جوړ كړلو.وكيل مبيع اوكتلو.او په دې ئې قبضه اوكړله.نود مشتري خيارشرط نه ساقطيږي.او لكه مثلاًوكيل بالقبض د مبيع كتلو نه بغير په دې باندې قبضه اوكړله.بيا ئې مبيع اوكتلو.او په قصد سره ئې خيار ساقط كړلو.نو دده په قصد سره د خيار رؤيت په ساقطولو سره د مشتري ( موكل ) خيار رؤيت نه ساقطيږي.نو لكه څنګه چې د وكيل په مبيع كتلو،او په قبضه كاوه سره د مشتري خيار عيب اوخيار شرط نه ساقطيږي.او په قصد سره د خيار رؤيت په ساقطولو سره د مشتري خيار رؤيت نه ساقطيږي.دغه ډول د وكيل بالقبض په مبيع كتلو،او په دې باندې قبضه كاوه سره د مشتري ( موكل ) خيار رؤيت هم نه ساقطيږي.

وَلَهُ أَنَّ الْقَبْضَ نَوْعَانِ: اود امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې. چې د قبضه دوې (دوه) قسمونه دي تَامٌّ① قبضه كامل وَهُوَ أَنْ يَقْبِضَهُ وَهُوَ يَرَاهُ:اوهغه داده.چه په مبيع باندې قبضه اوكړي.په داسې حال كې چې دې ته ګورى وَنَاقِصٌ② قبضه ناقص وَهُوَ أَنْ يَقْبِضَهُ مَسْتُورًا:او هغه دادې.چه په مبيع باندې قبضه اوكړي.په داسې حال كې چې دا د نظر نه پټ وي.

**حل اللغة:-** ①نوعان-تثنيه د نوع،قسم-②تام-كامل-③ يرا-ويني-④مستور-پټ

**تشريح:-** دحضرت امام ابوحنيفه ﷫ د دليل نه وړاندې يوه مقدمه په ذهن كې كينوئ.هغه دا چې قبضه په دوې (دوه) قسمه ده.① قبضة تام ② قبضه ناقص، اول داچه په مبيع باندې په داسې حال كې قبضه اوكړي.چه ده ته په نظر ښكاري.او دوهم داچه په مبيع باندې داسې حال كې قبضه اوكړي.چه په نظر نه ښكاري.

وَهٰذَا لِأَنَّ تَمَامَهُ بِتَمَامِ الصَّفْقَةِ اودا په دې وجه دې.چه دقبضه پوره كيدل، صفقه پوره كاوه سره دى وَلَا تَتِمُّ مَعَ بَقَاءِ خِيَارِ الرُّؤْيَةِ حالانكه د خيار رؤيت په پاته كيدلو سره صفقه نه پوره كيږي وَالْمُوَكِّلُ مَلَكَهُ او موكل د دواړه قسمه قبضه مالك دي بِنَوْعَيْهِ فَكَذَا الْوَكِيلُ نوهم دغه ډول به وكيل ( هم د دواړه قسمه قبضو مالك وي).

**حل اللغة:-** ①الصفقة،معامله،عقد ، ②بقاء،پاته والې ، ③الخيار،اختيار ، ④سقط،ساقط شو

**تشريح:-** اود قبضه دا دوې (دوه) قسمونه څكه دي.چه د قبضه تماميدل او پوره كيدل په صفقه تام او پوره كيدلو باندې موقوف دي.يعنى كه صفقه تام وي.نو قبضه به هم تام وي.اوكه صفقه ناقصه وي.نو قبضه به هم ناقصه وي.اودا خبره منلې شوې ده.چه د خيار رؤيت سره صفقه نه پوره كيږي.نو هركله چې مشتري مبيع ته ګوري.او قبضه اوكړي.نو مبيع ته د كتلو په وجه خيار رؤيت ساقطيږي.او هركله چې خيار رؤيت ساقط شو.نو صفقه به هم كامل وي.او هركله چې صفقه كامل شوه.نود مشتري قبضه هم تام شوه.او هركله چې د مبيع كتلو نه بغير په دې باندې قبضه اوكړي.نو چونكه د رؤيت په نه موجود كيدلو سره خيار رؤيت ساقط نشو.په دې وجه صفقه هم تام نشوه.اوهركله چې صفقه تام نشوه.نو قبضه به هم تام نه وي.

ددې تمهيد نه روسته اوګورئ.چه موكل يعنى مشتري د قبضه دواړه قسمونو مالك دې.يعنى دې قبضه تام هم كولې شي.او قبضه ناقصه هم كولې شي.او توكيل يعنى وكيل بالقبض جوړول چونكه مطلق دى.په دې وجه به وكيل هم په دواړه قسمه د قبضه مالك وي.

وَمَتَى قَبَضَ الْمُوَكِّلُ او هركله چې موكل په داسې طريقه قبضه اوكړله وَهُوَ يَرَاهُ چې دې مبيع ګورى سَقَطَ الْخِيَارُ نو خيار رؤيت ساقطيږي فَكَذَا الْوَكِيلُ لِإِطْلَاقِ التَّوْكِيلِ نود توكيل مطلق كيدلو په وجه هم دا حكم د وكيل دې.

**تشريح:-** او موكل يعنى مشتري كه قبضه تام اوكړي.يعنى مبيع اوګوري.او په دې باندې قبضه اوكړي.نود مشتري خيار رؤيت ساقطيږي.نو چونكه وكيل هم د موكل په حكم كې دې.په دې وجه د وكيل مبيع كتل،او په قبضه كولوسره هم دده خيار رؤيت ساقطيږي.نو ثابته شوه.چه د وكيل بالقبض مبيع كتل د مشتري د كتلو ښان دي.يعنى لكه څنګه چې د مشتري په كتلو سره خيار رؤيت ساقطيږي.دغه ډول دده د وكيل بالقبض په كتلو سره هم د مشتري خيار رؤيت ساقطيږي.

وَإِذَا قَبَضَهُ مَسْتُوْرًا او هر كله چې وكيل په مبيع باندې داسې حال كې قبضه اوكړله چه دا د نظر نه پټ دې اِنْتَهَى التَّوْكِيْلُ بِالنَّاقِصِ مِنْهُ نو په دې ناقص قبضې سره توكيل پوره شو فَلَا يَمْلِكُ إِسْقَاطَهُ قَصْدًا بَعْدَ ذٰلِكَ بيا ددې نه روسته وكيل په قصد سره د خيار رؤيت ساقطولو مالك نه دې.

**حل اللغة:** ① مستور، د نظر نه پټه، ② انتهى، پوره شو، ③ اسقاط، ساقطول، ④ قبض، قبض كړه

**تشريح:-** په دې عبارت سره د يو اعتراض ځواب وركوي. اعتراض دادې چه ستاسو دا ونيل چه د مشترى وكيل د مشترى پشان دى غلط دى. مونږ دا نه منو. ځكه كه مشترى د كتلو نه بغير په مبيع باندې قبضه اوكړي. او بيا مبيع اوګوري. او خيار په قصد سره ساقط كړي. نود مشترى خيار رؤيت ساقطيږي. خو كه د مشترى وكيل بالقبض د كتلو نه بغير په مبيع باندې قبضه اوكړله. بيا ئې مبيع اوكتلو. او په قصد سره ئې خيار رؤيت ساقط كړلو. نو په دې سره د مشترى خيار رؤيت نه ساقطيږي. نو ثابته شوه. چه وكيل بالقبض د مؤكل پشان نه دې. ددې ځواب دادې. چه وكيل بالقبض د كتلو نه بغير په مبيع باندې قبضه اوكړله. نو په قبضه كولو سره دده وكالت ختم شو. او هر كله چې د وكيل وكالت ختم شو. نودې د مشترى په حق كې د اجنبى (غير) پشان شو. او څوك اجنبى سړې د مشترى خيار رؤيت ساقطولو اختيار نه لرى. په دې وجه د وكيل په مبيع باندې د كتلو نه بغير قبضه كاوه نه روسته وكيل ته د مشترى خيار رؤيت په قصد سره د ساقطولو اختيار نه وى.

بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ؛ په خلاف د خيار عيب لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ تَمَامَ الصَّفْقَةِ، ځكه چې خيار عيب د صفقه پوره كاوه نه مانع نه دې فَيَتِمُّ الْقَبْضُ مَعَ بَقَائِهِ، نود خيار عيب پاته كيدلو باوجود قبضه پوره كيږي وَخِيَارُ الشَّرْطِ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ او خيار شرط مختلف فيه دې.

**تشريح:-** په دې عبارت سره د صاحبينو رحمهما الله د قياس ځواب وركوي. ځواب دادې. چه خيار رؤيت په خيار عيب باندې قياس كول ټيك نه دى. ځكه چې خيار عيب د صفقه كامليدلو نه مانع نه دې. يعنى د خيار عيب په موجود ګئ كې صفقه كامل او پوره كيږي. هر كله چې صفقه تام شى. نود خيار عيب باوجود قبضه هم كامل كيږي. او د خيار رؤيت په موجودګئ كې صفقه نه تام كيږي. لكه څنګه چې وړاندې تير شو. نو په دې توپير سره خيار رؤيت په خيار عيب باندې قياس كول څنګه ټيك كيداې شى. او پاتې شو خيار شرط نو دا پخپله مختلف فيه دې. يعنى كه يو كس خيار شرط سره څه شئ واخستلو. بيا مشترى څوك په مبيع باندې د قبضه كاوه وكيل جوړ كړلو. اوس كه وكيل بالقبض د مبيع په كتلو سره قبضه اوكړله. نود حضرت امام اعظم رحمه الله په نيز د مشترى خيار شرط ساقطيږي. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز نه ساقطيږي. نو هر كله چې د خيار رؤيت پشان خيار شرط هم مختلف فيه دې. او د امام صاحب رحمه الله په نيز د وكيل بالقبض په مبيع ليدلو، او قبضه كاوه سره به د مشترى خيار شرط هم د خيار رؤيت پشان ساقطيږي. نود صاحبينو رحمهما الله د خپل قول ثابتولو لپاره خيار رؤيت په خيار شرط باندې قياس كول څنګه ټيك كيدلې شى.

وَلَوْ سَلِمَ او كه اومنلې شى فَالْمُوَكِّلُ لَا يَمْلِكُ التَّامَّ مِنْهُ نو موكل د كامل قبضه مالك نه دې فَإِنَّهُ لَا يَسْقُطُ بِقَبْضِهِ، ځكه چې دده په قبضه كاوه سره خيار شرط نه ساقطيږي لِأَنَّ الْإِخْتِبَارَ وَهُوَ الْمَقْصُوْدُ بِالْخِيَارِ ځكه چې خوښول كول چې د خيار شرط نه مقصود دې يَكُوْنُ بَعْدَهُ، دا به د قبضې نه روسته كيږي فَكَذَا لَا يَمْلِكُهُ وَكِيْلُهُ نو هم دغه ډول به دده وكيل هم د قبضه كامل نه مالك كيږي.

**تشريح:-** او كه دا اومنلې شى، چه د وكيل بالقبض د مبيع په كتلو او قبضه كولو سره بالاتفاق د مشترى خيار شرط نه ساقطيږي. او دا صحيح هم ده. نو ددې ځواب دادې. چه وكيل بالقبض د مؤكل يعنى د مشترى قائم مقام وى. او د خيار شرط په صورت كې كه مؤكل د مبيع په كتلو سره په دې باندې قبضه اوكړي. نو پخپله د مؤكل خيار شرط نه ساقطيږي. نو هم دغه ډول كوم چې دده قائم مقام وى. يعنى وكيل دده په قبضه كولو سره به هم د مؤكل يعنى د مشترى خيار شرط نه ساقطيږي. او پاتې شوه داچه د مشترى په مبيع باندې په قبضه كاوه سره دده خيار شرط ولې



نه ساقطيږي. نو ددې ځواب دادې. چه د خيار شرط مقصود، د مبيع ښه او خراب معلومول دى. او دا مقصد د قبضه كاوه نه روسته پوره كيږي. اوس كه په مبيع باندې په قبضه كولو سره د مشترى خيار شرط ساقط شى. نود خيار شرط مشروع كيدلو مقصد به فوت شى. په دې وجه اوونيلې شو. چه په مبيع باندې قبضه كولو سره خيار شرط نه ساقطيږي. حاصل داچه هر كله مؤكل يعنى د مشترى په مبيع باندې په قبضه كاوه سره دده خيار شرط نه ساقطيږي. نو دده د وكيل په قبضه كاوه سره به په درجه اولى دده خيار شرط نه ساقطيږي.

وَبِخِلَافِ الرَّسُوْلِ او په خلاف د قاصد لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ شَيْئًا، ځكه چې دې د هيڅ شئ نه مالك كيږي وَإِنَّمَا إِلَيْهِ تَبْلِيْغُ الرِّسَالَةِ دده كار خو صرف پيغام رسول د ى. وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ الْقَبْضَ، وَالتَّسْلِيْمَ إِذَا كَانَ رَسُوْلًا فِي الْبَيْعِ په دې وجه هر كله چې دې په بيع كې قاصد وى نود قبضه كاوه او سپارلو مالك به نه وى.

**حل اللغة:** ① يملك، مالك كيږى ② ، التسليم، سپارل، ③ تبليغ، رسول، ④ الرسالة، پيغام

**تشريح:-** پاتې شو قاصد، نو دې د وكيل پشان دې. ، ځكه چې قاصد نه د قبضه تام اختيار لرى. او نه د قبضه ناقص اختيار لرى. بلكه د قاصد كار صرف پيغام رسول وى. هم دا وجه ده. كه يو كس د بيع په سلسله كې قاصد وى. نو دې نه په ثمن باندې د قبضه اختيار مند وى. او نه ده ته د مبيع سپارلو اجازت وى. او پاتې شو وكيل، نو ده ته د تصرف اختيار وى. چه دې پخپلې رائې سره عمل اوكړي. چونكه وكيل او رسول (قاصد) دواړه جلا جلا د دوې (دوه) حيثيتونو مالكان دى. په دې وجه د رسول نه د وكيل سلب شوې دې. لكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿قُلْ لَسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ﴾ يعنى تاسو ﷺ اوفرمايئ؛ چه زه په تاسو وكيل (ذمه وار) نه يم. حالانكه هغوى ﷺ رسول وو. نو معلومه شوه. چه د وكيل او رسول مفهوم جلا جلا دې. په دې وجه وكيل په رسول باندې قياس كول هم ټيك نه دى.

## د نابينا لپاره د خيار رؤيت طريقه

قَالَ وَبَيْعُ الْأَعْمٰى وَشِرَاؤُهُ جَائِزٌ اود نابينا (ړوند) اخستل خرڅول جائز دى وَلَهُ الْخِيَارُ إِذَا اشْتَرٰى وكله چې دې واخلى. ده ته به خيار حاصل وى لِأَنَّهُ اشْتَرٰى مَالَمْ يَرَهُ ځكه چې ده داسې شئ واخستلو. چه ده نه دې ليدلې وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او دا مونږ وړاندې بيان كړل.

**حل اللغة:** ① الاعمى، ړوند ، ② قرر، بيان كړى ، ③ اشترى، اخستې، ④ الخيار، اختيار

**تشريح:-** علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه د احنافو رحمهم الله په نيز د نابينا (ړوند) اخستل خرڅول جائز دى. او كه ړوند مشترى وى. نو دده لپاره خيار رؤيت هم ثابت دې. ځكه چې ده داسې شئ اخستې دې. چه ده نه دې ليدلې. او مونږ وړاندې ثابت كړې دى. چه د كتلو نه بغير څه شئ اخستل جائز دى. او دده لپاره خيار رؤيت ثابت وى. او ړوند سړې د هغه بينا سړى پشان دې. كوم چې د كتلو نه بغير څه شئ واخلى. نو ددې نابينا د كتلو نه بغير څه شئ اخستل. او دده لپاره خيار رؤيت ثابتيدل جائز دى. لكه څنګه چې د بينا په حق كې جائز دى.

**مذهب الشافعى رحمه الله** ۞ حضرت امام شافعى رحمه الله فرمائى. كه يو سړې د وړاندې نه بينا وو. او روسته نابينا شو. نو دده اخستل خرڅول خو بلا شبه جائز دى. خو كه څوك مادرزاد (مورزاده (پيدائشى)) نابينا وى. نو دده اخستل خرڅول بالكل جائز نه دى. ځكه چې ده ته نه د رنګونو علم دې. او نه د صفاتو علم دې. په دې وجه ده ته د بيع صفتونه او رنګونه بيانول بې فائدې دى. او هر كله چې د مبيع اوصاف او رنګونه بيانول ممنوع دى. په دې وجه د مورزاده (پيدائشى) ړوند اخستل خرڅول ناجائز او ممنوع دى.

**جوابنا** ۞ خلګ مورزاده (پيدائشى) ړوند او روسته ړوند شوى دواړو سره د اخستلو خرڅولو معامله كوى. او په دې باندې څه بد هم نه وائى. او د بدو ګڼړلو نه بغير د خلګو عمل او عادت شرعى حجت دې. لكه د مسلمانانو په څه شئ باندې اجماع كول چې شرعى حجت دې. دې نه معلومه شوه. چه مطلقاً د نابينا سره اخستل خرڅول جائز دى.

**الجواب الثانى** ۞ مورزاده (پيدائشى) ړوند كه د اخستلو خرڅولو مالك نه دې. نو دې د بل كس د اخستلو خرڅولو د وكيل جوړيدلو هم مالك نه دې. ځكه چې قاعده هم دا ده. چه كوم كس د اخستلو خرڅولو اختيار نه لرى. ده له د

خپل ارخه د بل وكيل جوړولو اختيار به هم نه وي.اوس كه موږزاده (پيدائشي) ړوند ته د خوراك څكاك څيزونو ارتيا راپيښ شي.اود امام شافعي رحمه الله په قول نه ده ته د اخستلو اجازت دي. اونه د اخستلو وكيل جوړولو اجازت دي.نودا غريب به د اولګي نه مړشي.او ددې قباحت په معمولي عقل لرونكي باندې هم پټ نه دي.نود امام شافعي رحمه الله پشان فاضل باندې څنګه پټ وي.په دې وجه د نابينا اخستل خرڅول هم جائز ګرځولي شوي دي.

ثُمَّ يَسْقُطُ خِيَارُهُ بِجَسِّهِ الْمَبِيعَ بيا د ړوند خيار رؤيت د مبيع په لاس سره معلومولو سره ساقطيږي إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالْجَسِّ چې كله دا دلاس په معلومولو سره پيژندلې شي وَبِشَمِّهِ او په بوېولو سره به ساقطيږي إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالشَّمِّ چې په بوېولو سره پيژندلې شي وَبِذَوْقِهِ او په څښلو سره به ساقطيږي إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالذَّوْقِ چه كله په څښلو سره پيژندلې شي كَمَا فِي الْبَصِيرِ لكه څنګه چې د بينا په حق كې دي.

حل اللغة: ① حبس،بنديز، ② الشم،بوېول، ③ ذوق،څكل، ④ بصير،په سترګو بينا

تشريح:- پاتې شوه داخبره چې د نابينا خيار رؤيت به كله ساقطيږي.نوددې حكم دادې.چه مبيع كه داسې شئ وي.كوم چې د لاس په معلومولو سره پيژندلې شي.نود مبيع په لاس سره معلومولو باندې د نابينا خيار رؤيت ساقطيږي.اوكه مبيع په بوئي كاوه سره پيژندلې شي.نو په بوېولو سره دده خيار رؤيت ساقطيږي.او كه په څښلو سره پيژندلې شي.نو په څښلو سره دده خيار رؤيت ساقطيږي.لكه څنګه چې په دې څيزونوكي د بينا هم دا حكم دي.

وَلَا يَسْقُطُ خِيَارُهُ فِي الْعَقَارِ اود غير منقوله جائيداد اخستلو په صورت كې دده خيار نه ساقطيږي حَتَّى يُوصَفَ لَهُ[1] لِأَنَّ الْوَصْفَ يُقَامُ مَقَامَ الرُّؤْيَةِ څكه چې وصف د كتلو قائم مقام جوړيږي كَمَا فِي السَّلَمِ لكه څنګه چې په بيع سلم كې دي.

حل اللغة: ① العقار،مځكه ، ② الروية،ليدل ③ ،سقط،ساقط شو ، ④ رضيت،زه راضي يم

تشريح:- اوكه نابينا سړی څه غيرمنقوله جائيداد واخستلو.مثلاً وُنه ئې واخستله.يا ئې كور واخستلو.يا ئې مځكه واخستله.نو دده خيار رؤيت به نه ساقطيږي.چه تر كوم وخته پورې په ښه شان واړه وصف بيان نكړې شي.څكه چې وصف بيانول د رؤيت قائم مقام وي.لكه څنګه چې په بيع سلم كې ،مسلم فيه اګرچه معدوم وي.خود وصف بيانول،د مسلم فيه قائم مقام وي.نو لكه څنګه چې په بيع سلم كې د مسلم فيه اوصاف بيانول د مسلم فيه قائم مقام ګرځولي شوي دي.دغه ډول د نابينا په حق كې هم د مبيع اوصاف بيانول د رؤيت قائم مقام منلي شوي دي.اود مبيع د رؤيت نه روسته په بيع باندې راضي كيدلو سره چونكه خيار رؤيت ساقطيږي.په دې وجه كه نابينا ته د مبيع اوصاف بيان كړې شو.اودې په دې باندې راضي شو.نو دده خيار رؤيت ساقطيږي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اود ابويوسف رحمه الله نه نقل دي. أَنَّهُ إِذَا وَقَفَ فِي مَكَانٍ لَوْ كَانَ بَصِيرًا لَرَآهُ كه ړوند داسې ځائې كې ولاړ وي.كه (بالفرض) بينا كس وې.نو مبيع به ئې كتلې وو وَقَالَ: قَدْ رَضِيتُ سَقَطَ خِيَارُهُ اوده اوونيل.زه راضي يم.نو دده خيار رؤيت ساقط شو.

تشريح:- د حضرت امام ابويوسف رحمه الله روايت دادې.چه كله نابينا په داسې ځائې كې ولاړ وي.چه كه دې بينا وو.نو مبيع به ئې كتلې وو.نو په داسې ځائې كې كه ودريدلو،او نابينا خپله رضامندي ښكاره كړله.نو دده خيار رؤيت به ساقط وي.اګرچه د مبيع اوصاف ذكر نكړې شو.

لِأَنَّ التَّشْبِيهَ يُقَامُ مَقَامَ الْحَقِيقَةِ فِي مَوْضِعِ الْعَجْزِ دليل دا دې چې د عجز په مقام كې تشبيه هم د حقيقت قائم مقام وي كَتَحْرِيكِ الشَّفَتَيْنِ يُقَامُ مَقَامَ الْقِرَاءَةِ فِي حَقِّ الْأَخْرَسِ فِي الصَّلَاةِ لكه (څنګه) چې په لمانځه كې د ګونګي په حق كې

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (٥٤٢\٥) والخانية (٣٦٥\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٤\٢)-



شونډې خوزول د قرات قائم مقام وي وَإِجْرَاءُ الْمُوسَى مَقَامَ الْحَلْقِ فِي حَقِّ مَنْ لَا شَعْرَ لَهُ فِي الْحَجِّ او په حج كې د هغه سړي په حق كې دچا په سرچه ايخته نه وي.پتړې (بليډ) رابنكل د سر ګنجي كاوه قائم مقام جوړيږي.

حل اللغة: ① موضع،ځائې، ② العجز،عاجزي، ③ شفتين،جمع د شفة،شونډه ④ ،الاخرس،ګونګا ⑤ تحريک،خوزول، ⑥ شعر،ويخته، ⑦ موسى،پتړې، ⑧ اجراء،رابنكل

تشريح:- دليل دا دې چې د عجز په صورت كې تشبيه، د حقيقت قائم مقام وي.لكه څنګه چې په لمانځه كې د ګونګي په حق كې شونډې ړقول د قرات قائم مقام وي.او په حج كې په سر باندې پتړې (بليډ) رابنكل د حلق (سرخرنيلو) قائم مقام دی.دغه ډول د نابينا په داسې ځائې كې ودريدل، چې د هغه ځائې نه بينا سړی ته مبيع په نظر راتګې شي.دده د كتلو قائم مقام دی.

وَقَالَ الْحَسَنُ: او حسن ونيلي دي يُوَكِّلُ وَكِيلًا يَقْبِضُهُ وَهُوَ يَرَاهُ چې دې يو كس وكيل جوړكړي چه دې د كتلو په حالت كې په مبيع باندې قبضه اوكړي وَهَذَا أَشْبَهُ بِقَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ اودا د ابوحنيفه رحمه الله دقول زيات مشابه دي لِأَنَّ رُؤْيَةَ الْوَكِيلِ كَرُؤْيَةِ الْمُوَكِّلِ څكه چې د وكيل كتل د موكل كتل دي عَلَى مَا مَرَّ آنِفًا لكه څنګه چې اوس اوس تير شو.

تشريح:- حسن بن زياد رحمه الله فرمائيلي دي.كه نابينا څوك په دې خبره وكيل جوړكړي.چه دې مبيع اوګوري.او قبضه ئې كړي.د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله د قول زيات مشابه دی.څكه چې د امام صاحب رحمه الله په نيز د وكيل كتل، دموكل دكتلو پشان دي.لكه څنګه چې وړاندې تير شوي دي.اود موكل په مبيع كتلوسره دده خيار رؤيت ساقطيږي.نود وكيل په كتلو سره به هم د موكل خيار رؤيت ساقطيږي.

### د يوې كپړې په كتلو سره د دويمې كپړې په اخستلوكښې د رؤيت حكم

قَالَ وَمَنْ رَأَى أَحَدَ الثَّوْبَيْنِ فرمائي.اوچاچه په دوې (دوه) تهانونوكي يو (تهان) اوكتلو فَاشْتَرَاهُمَا او دواړه ئې واخستل. ثُمَّ رَأَى الْآخَرَ بيا ده دوهم اوكتلو جَازَ لَهُ أَنْ يَرُدَّهُمَا نوده ته دواړو تهانونو واپس كاوه اختيار دې.

حل اللغة: ① ثوبين،تثنيه د ثوب،جامه، ② اشترا،واخستې، ③ روية،ليدل، ④ التفاوت،فرق

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه يوكس په دوې (دوه) تانوو كې يو پلنډه اوكتلو.او دواړه ئې واخستل.بيا ئې دوهم پلنډه اوكتلو.نو مشتري ته به د خيار رؤيت لاندې د دواړو تانونو واپس كاوه اختيار حاصل وي.

لِأَنَّ رُؤْيَةَ أَحَدِهِمَا لَا تَكُونُ رُؤْيَةَ الْآخَرِ لِلتَّفَاوُتِ فِي الثِّيَابِ څكه چې په كپړوكې د تفاوت په وجه، په دې دواړوكې يو كتل د دوهم كتل نه دی فَيَبْقَى الْخِيَارُ فِيمَا لَمْ يَرَهُ په دې وجه كومه كپړه ئې چې نه ده كتلې.په هغې كې به خيار پاته وي.

تشريح:- دليل دادې.چه وړاندې تيرشوي دي.چه په متفاوت الآحاد څيزونوكي د يوڅيز كتل،د ټولو لپاره كافي نه وي.بلكه د هر يوجلا جلا كتل ضروري دی.نو ددې اصولو په رڼاكې د يوتان په كتلو سره د دوهم پلنډه كتل نشي شمارلې.څكه چې په كپړوكې د ماليت په اعتبار سره ډير تفاوت وي.په دې وجه مشتري چې كوم پلنډه نه دې كتلې.په هغې كې به خيار رؤيت حاصل وي.

ثُمَّ لَا يَرُدُّهُ وَحْدَهُ بيا دا به جلا نه واپس كوی بَلْ يَرُدُّهُمَا بلكه دواړه به واپس كوی كَيْ لَا يَكُونَ تَفْرِيقًا لِلصَّفْقَةِ قَبْلَ التَّمَامِ چه د صفقه تماميدلو نه وړاندې تفريق نه وي.

تشريح:- خود خيار رؤيت په وجه به صرف ددې يو پلنډه واپس كاوه اختيار نه وي.بلكه كه واپس كول اوغواړي.نو دواړه تانونه واپس كول ضروري دي.

وَهَذَا لِأَنَّ الصَّفْقَةَ لَا تَتِمُّ مَعَ خِيَارِ الرُّؤْيَةِ قَبْلَ الْقَبْضِ وَبَعْدَهُ اودا څكه چې د قبضه نه وړاندې هم اود قبضه نه روسته هم خيار رؤيت،سره صفقه نه تماميږي.

**تشريح:-** دليل دا دي که مشتري يو پلنډه واپس کړلو او کوم ئې چې د اخستلو نه وړاندې کتلي وو. هغه ئې واپس نکړو. نود صفقه تماميدلو څخه به وړاندې تفريق د صفقه لازم شي. حالانکه رسول الله ﷺ د،، تفريق صفقه قبل التمام،، نه منع فرمائيلي ده. په دې وجه د يو پلنډه واپس کول، اود يو نه واپس کول جائز نه دی.

او،، تفريق صفقه قبل التمام،، په دې وجه لازميږي. چه د خيار رؤيت په موجودګئ کي صفقه نه پوره کيږي. که مشتري په مبيع باندې قبضه کړې وی. او که قبضه ئې نه وی کړې. چونکه د خيار رؤيت سره صفقه نه تماميږي.

| وَهٰذَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الرَّدِّ بِغَيْرِ قَضَاءٍ وَلَا رِضَا او هم په دې وجه مشتري ته د قاضی د قضاء نه اود بائع د رضامندئ نه بغير د مبيع واپس کاوه اختيار دې وَيَكُونُ فَسْخًا مِنَ الْأَصْلِ اودا عقد د اصل نه فسخ شمارلې کيږي. |
|---|

**حل اللغة:** ① يتمكن،اختيار لری، ② الرد،واپس کيدل، ③ رضا،رضا مندي، ④ قضاء،فيصله

**تشريح:-** په دې وجه مشتري ته دا اختيار دې. چه دې د قاضی د قضاء، اود بائع د رضامندئ نه بغير عقد رد کړی. اودا بيع رد کول به په اصل کي فسخ وی. يعنی ګويا د سره منعقد شوې هم نه وه. ځکه چې د مبيع اوصاف معلوميدلو نه وړاندې د مشتري رضامندی متحقق نشوه. اود مشتري د رضامندئ نه بغير بيع نه منعقد کيږی. په دې وجه دې صورت کي ګويا د بيع انعقاد اونشو.

## په مرګ سره د خيار رؤيت باطليدل

| وَمَنْ مَاتَ وَلَهُ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ او (که) هغه کس مړشو. دچا لپاره چې خيار رؤيت وو بَطَلَ خِيَارُهُ نو دده خيار رؤيت باطل شو لِأَنَّهُ لَا يَجْرِي فِيهِ الْإِرْثُ عِنْدَنَا ځکه چې زموږ په نيز خيار رؤيت کي وراثت نه جاری کيږی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي خِيَارِ الشَّرْطِ اودا موږ په خيار شرط کي ذکر کړی دی. |
|---|

**حل اللغة:** ① مات،مړشو ② ،الروية،ليدل، ③ الارث،ميراث ④ ،يجری،جاری کيږی

**تشريح:-** په خيارکي د وراثت جاری کيدلو، اود نه جاری کيدلو په سلسله کي دخيار شرط لاندې تفصيلی بحث تيرشوې دې. هلته کي ئې اوګورئ.

## د کتلو نه روسته څه موده روسته اخستلوکښې د رؤيت حکم

| وَمَنْ رَأَى شَيْئًا اوچا چې څه شئ اوکتلو ثُمَّ اشْتَرَاهُ بَعْدَ مُدَّةٍ بيا څه موده روسته ئې دا واخستلو فَإِنْ كَانَ عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي رَآهُ نوکه دا هم په هغه صفت وو. په کوم ئې چې دا کتلي وو فَلَا خِيَارَ لَهُ نو دده لپاره خيار نشته. |
|---|

**حل اللغة:** ① مدة،موده، ② الصفة،حالت، ③ السابقة،وړاندينې، ④ مرئی،د ليدلو قابل

**تشريح:-** صورت دمسئلې دادې. چه يوسړي يوځيز اوکتلو. بيا ئې د يوې مودې نه روسته دا واخستلو. اوس که دا شئ په هم هغه صفت باندې وی. په کوم صفت سره ئې چې کتلي وو. نود مشتري لپاره به خيار رؤيت حاصل نه وی.

| لِأَنَّ الْعِلْمَ بِأَوْصَافِهِ حَاصِلٌ لَهُ بِالرُّؤْيَةِ السَّابِقَةِ، ځکه چې ددې د اوصافو علم ده ته په تيرشوی رؤيت سره حاصل شوې دې وَبِفَوَاتِهِ يَثْبُتُ الْخِيَارُ او ددې په فوت کيدلو سره خيار ثابتيږی إِلَّا إِذَا كَانَ لَا يَعْلَمُهُ مَرْئِيَّهُ خو کله چې مشتري دا کتلې شوې شئ نه پيژنی لِعَدَمِ الرِّضَا بِهِ ځکه چې دې شئ سره دده رضامندی او نه موندې شوه. |
|---|

**تشريح:-** دليل دا دې چې په تير شوی رؤيت سره مشتري ته د مبيع د اوصافو علم حاصل دې. اوخيار رؤيت هم هغه وخت ثابتيږی چه کله مشتري ته د مبيع د اوصافو علم نه وی. نو هرکله چې مشتري ته په تيرشوی رؤيت سره د مبيع د اوصافو علم اوشو. نو اوس به ده ته خياررؤيت حاصل نه وی. حاصل داچه د مبيع د اوصافو علم، اود ثبوت خيار په مينځ کي منافات دې. اود احدالمتنافيين په ثابتيدلو سره آخر منتفي کيږی. په دې وجه په تير شوی رؤيت سره د مبيع په اوصافو باندې د علم د ثبوت په صورت کي آخر يعنی ثبوت خيار منتفي کيږی. خو که مشتري ته دا علم نه وی. چه داځيز هم هغه دې. کوم چې ما کتلي وو. نو په دې صورت کي به مشتري ته خيار رؤيت حاصل



وی. ځکه چې په دې شئ باندې دده رضامندی اونه موندې شوه. اود رضامندئ فوت کيدلو په صورت کي خيار حاصليږی. په دې وجه به په دې صورت کي مشتري ته خيار رؤيت حاصل وی.

| وَإِنْ وَجَدَهُ مُتَغَيِّرًا او که مشتري دا بدل اوموندلو فَلَهُ الْخِيَارُ نو دده لپاره خيار دې لِأَنَّ تِلْكَ الرُّؤْيَةَ لَمْ تَقَعْ مُعْلِمَةً بِأَوْصَافِهِ ځکه چې مخکنې رؤيت داسې نه وو واقع شوې. چه هغه دې د اوصافو نه خبردار کړی فَكَأَنَّهُ لَمْ يَرَهُ ګويا ده مبيع اونه ليدلو. |
|---|

**حل اللغة:** ① متغير،بدل شوې، ② اوصافه،جمع د وصف، صفت، ③ حادث،نوې پيدا شوې، ④ ظاهر، ښکاره

**تشريح:-** او که مشتري مبيع د تيرشوی صفاتو نه مختلف بيا موندلو. نو مشتري ته به خيار رؤيت حاصل وی. ځکه چې تيرشوې رؤيت د مبيع د موجوده اوصافو د علم ذريعه نه وه جوړه شوې اونه وه واقع شوې. نودا داسې شوه. لکه چې مشتري دا دسره ليدلې نه وی. ګنی د کتلو نه روسته د اخستلو په صورت کي مشتري ته خياررؤيت حاصل وی.

| وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي التَّغَيُّرِ او که په متغير کيدلو کي بائع او مشتري اختلاف اوکړو فَالْقَوْلُ لِلْبَائِعِ نود بائع قول به قبول وی لِأَنَّ التَّغَيُّرَ حَادِثٌ ځکه چې دا توپير امرجديد دې وَسَبَبُ اللُّزُومِ ظَاهِرٌ اود بيع لازميدلو سبب ښکاره دې. |
|---|

**تشريح:-** او که مشتري اووئيل. چه مبيع بدل شوې دې. او بائع اووئيل. چه نه دې بدل شوې. نو په قسم سره به د بائع قول معتبر وی. ځکه چې په مبيع کي توپير پيداکيدل، يو جديد امرعارض شوې دې. اودا د ظاهر (ښکاره) خلاف دې. اود بيع لازميدلو سبب ظاهر امر دې. نود مشتري قول به د ظاهر حال خلاف وی. اود بائع قول به د ظاهر موافق وی. اود کوم کس قول چې د ظاهر خلاف وی. هغه ته مدعی وئيلې شی. اود کوم کس قول چې د ظاهر موافق وی. هغه ته مدعی عليه اومنکر وئيلې شی. نو مشتري مدعی، او بائع مدعی عليه شو. اود شريعت قاعده ده. که مدعی سره بينه او ګواهان نه وی. نود مدعی عليه قول مع اليمين معتبر وی. په دې وجه په دې مسئله کي مدعی عليه يعنی د بائع قول مع اليمين معتبر وی.

| إِلَّا إِذَا بَعُدَتِ الْمُدَّةُ خو که اوږده موده تيره شوه عَلَى مَا قَالُوا لکه څنګه چې متاخرين مشائخو فرمائيلی دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لِلْمُشْتَرِي ځکه چې ښکاره حال د مشتري لپاره شاهد دې. |
|---|

**تشريح:-** خو که د رؤيت موده اوږده شوه. نود ذکر شوی اختلاف په صورت کي به د مشتري قول معتبر وی. ځکه چې اوس ښکاره حال د مشتري موافق دې. يعنی د يوې اوږدې مودې نه روسته په مبيع کي توپير راتګ د ظاهر حال موافق دې. اود کوم کس قول چې د ظاهر حال موافق وی. هغه مدعی عليه وی. اود ګواهانو د نه کيدلو په صورت کي د مدعی عليه قول مع اليمين معتبر وی. په دې وجه په دې صورت کي به د مشتري قول معتبر وی.

| بِخِلَافِ مَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الرُّؤْيَةِ په خلاف ددې چې کله بائع او مشتري په رؤيت کي اختلاف اوکړی لِأَنَّهَا أَمْرٌ حَادِثٌ وَالْمُشْتَرِي يُنْكِرُهُ ځکه چې کتل امر جديد دې. او مشتري ددې نه منکر دې فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ په دې وجه به د مشتري قول معتبر وی. |
|---|

**تشريح:-** او که په نفس رؤيت کي اختلاف وی. په دې طريقه چې مشتري وائی. ما مبيع نه وو کتلې. او بائع وائی. چه تا کتلي وو. نو په دې صورت کي به د بائع قول نه قبليږی. بلکه د مشتري قول به معتبر وی. ځکه چې مبيع کتل، د يو جديد امرعارض کيدل دی. او بائع ددې دعوه کوی. او مشتري ددې منکر دې. نو بائع يعنی مدعی سره د ګواه نه کيدلو په وجه منکر، يعنی د مشتري قول به مع اليمين معتبر وی.

## د کپړو پنډ د کتلو نه بغير اخستلو نه روسته يوه کپړه خرڅول يا هبه کولو نه روسته دخيار رؤيت حکم

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى عِدْلَ زُطِّيٍّ (مصنف رحمه الله) فرمائی. اوچاچه يوه ګاټرئ د زطی (يوځائې ته نسبت دې) ټهانونو واخستله وَلَمْ يَرَهُ حالانکه دائې کتلې نه ده فَبَاعَ مِنْهُ ثَوْبًا أَوْ وَهَبَهُ وَسَلَّمَهُ لَمْ يَرُدَّ شَيْئًا مِنْهَا إِلَّا مِنْ عَيْبٍ، وَكَذٰلِكَ خِيَارُ الشَّرْطِ فَبَاعَ

منه شيئا.. د ګاټرۍ نه ئې يو تهان خرڅ کړو أووهبه وسلمه يائې هبه کړو.او وې سپارلو لم يرد شيئا منها..نو په دې (ګاټرۍ) کې هيڅ نشي واپس کولې إلا من عيب وكذلك خيار الشرط. مګر د عيب په وجه.اوهم دغه ډول خيار شرط دې.

حل اللغة: ① عدل،پنډ، ② تفريق،جدا کول، ③ تمام،پوره والې، ④ يمنع،منع کوی

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يو کس يو پنډ د زطی تانونو واخستلو.حالانکه دده دا نه وو کتلې.او په دې ئې قبضه هم اوکړله.بيا ئې ددې پنډ نه يو پلنډه په چا خرڅ کړلو.يا ئې هبه کړلو.او موهوب له ته ئې قبضه ورکړله.نومشتری د خيار رؤيت په وجه په دې کې هيڅ هم نشی واپس کولې.يعنی دده خيار رؤيت ساقط شو.خو که په پاته تانونوکې څه عيب ښکاره شو.نود خيارعيب په وجه د واپس کاوه اختيار دې.هم دا حکم د خيار شرط دې.يعنی که پنډ ئې په خيارشرط سره واخستلو.او په دې ئې قبضه اوکړله.بيا ئې ددې نه يو پلنډه خرڅ کړلو.يائې هبه کړلو.او موهوب له ته ئې اوسپارلو.نو اوس د خيار شرط په وجه به ده ته د پاته پلنډه واپس کاوه اجازت نه وی.خود خيارعيب په وجه ئې واپس کولې شی.

لأنه تعذر الرد فيما خرج عن ملكه،ځکه کوم تهان چې دده دملك نه د هغې واپس کول متعذر دی وفي رد ما بقي تفريق الصفقة قبل التمام،اود پاته په واپس کاوه کې تفريق صفقه قبل التمام ده لأن خيار الرؤية والشرط يمنعان تمامها ځکه چه خيار رؤيت او خيارشرط د صفقه تماميدلو لپاره مانع دی.

تشريح:- دليل دادې.چه د کپړې کوم پلنډه د مشتری د ملك نه په خرڅولو، يا په هبه مع القبضه کاوه په وجه وتلې دې.چونکه دده سره د غير، يعنی د دوهم مشتری يا موهوب له حق متعلق شوې دی.په دې ددې واپس کول متعذر دی.يعنی په يو پلنډه کې خيار رؤيت ساقط شوې دې.او په پاته تانونو په واپس کولوکې تفريق صفقه قبل التمام لازميږی.حالانکه تفريق صفقه قبل التمام شرعا ناجائز دې.او تفريق صفقه قبل التمام په دې وجه لازميږی.چه خيار رؤيت او خيار شرط د صفقه پوره کاوه نه مانع دی.يعنی په دې دواړوکې د يو په موجودګۍ کې صفقه نه پوره کيږی.

بخلاف خيار العيب په خلاف د خيارعيب لأن الصفقة تتم مع خيار العيب بعد القبض ځکه چې د قبضه نه روسته خيارعيب سره صفقه پوره کيږی وإن كانت لا تتم قبله اګرچه د قبضه نه وړاندې نه پوره کيږی وفيه وضع المسألة اود مسئلې وضع هم په دې کې ده.

تشريح:- او پاتې شو خيارعيب، نودا د قبضه نه روسته د صفقه پوره کيدلونه مانع نه وی.اګرچه د قبضه نه وړاندې صفقه نه پوره کيږی.يعنی د خيارعيب په صورت کې که مشتری په مبيع باندې قبضه کړې وی.نو صفقه پوره کيږی.او که قبضه ئې نه وی کړې.نو صفقه نه پوره کيږی.دلته کې مسئله هم په دې صورت کې فرض کړې شوې ده.چه کله مشتری په مبيع باندې قبضه کړې وی.نو هرکله چې مشتری په مبيع باندې قبضه اوکړله.نود خيارعيب باوجود صفقه پوره شوه.او هرکله چې صفقه پوره شوه.نود خرڅ کړې شوی تان، يا د ،،هبه مع القبضه،، پلنډه نه علاوه د پاته تانونو په واپس کاوه سره صفقه لازميږی.خود صفقه تفريق به د تمام نه روسته لازميږی.قبل التمام به نه لازميږی.او تفريق صفقه بعدالتمام جائز ده.په دې وجه د خيار عيب په وجه د پاته تانونو د واپس کاوه اجازت ورکړې شوې دې.

فلو عاد إليه بسبب نوکه خرڅ کړې شوې يا هبه شوې تهان دده ارخ ته په داسې سبب سره واپس راغلو هو فسخ چې دا فسخ ده فهو على خيار الرؤية،نو مشتری ته به خيار رؤيت حاصل وی كذا ذكره شمس الأئمة السرخسي هم دغه ډول شمس الائمه سرخسی رحمه الله ذکر کړی دی.

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه کوم پلنډه مشتری خرڅ کړو،يا ئې هبه کړلو.او موهوب له ته ئې اوسپارلو.که دا پلنډه مشتری له په داسې سبب سره واپس راغی،چه فسخ دې.مثلاً دوهم مشتری د عيب په وجه د قاضی د قضاء په ذريعه دا پلنډه ړومبی مشتری ته واپس کړلو.اود هبه په صورت کې ده هبه واپس واخستلو.نودا ړومبی



مشتری يا واهب به پخپل خيار رؤيت باندې پاته وی.يعنی که ټولو تانونه د خيار رؤيت لاندې واپس کول اوغواړی.نو واپس کولې شی.ځکه چې په واپس کولوسره کوم شیٔ مانع وو( يعنی د مشتری تصرف) هغه زائل شو.شمس الائمه سرخسی رحمه الله هم دا ذکر کړی دی.

وعن أبي يوسف اود ابويوسف رحمه الله نه روايت دې أنه لا يعود بعد سقوطه[1] چې خيار رؤيت ساقطيدلو نه روسته نه واپس کيږی كخيار الشرط، لکه څنګه چې خيارشرط نه واپس کيږی وعليه اعتمد القدوري هم په دې باندې امام ابوالحسن قدوری رحمه الله اعتماد کړې دې.

حل اللغة: ① يعود،واپس کيږی، ② اعتمد،اعتماد کړې، ③ سقوط،ساقط کيدل، ④ خيار،اختيار

تشريح:- د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه يوځل خيار رؤيت ساقطيدلو نه روسته دوباره نه واپس کيږی.ځکه قاعده ده.چه «الساقط لا يعود» لکه څنګه چې خيارشرط ساقطيدلو نه روسته نه واپس کيږی.د امام قدوری رحمه الله معتمدعليه مذهب هم دادې.

## باب خيار العيب

ژباړه:- (دا) باب د خيار عيب (په بيان کې) دې.

**وجه تاخيرهذا الباب عن الباب السابق**❀په خيار رؤيت او خيارشرط کې عقد نه تماميږی بلکه رؤيت او شرط د صفقه د تماميدو نه مانع دی نو دا مانعيت زيات قوی دی او په خيارعيب کې يوځل صفقه پوره شوې وی خو د عيب په وجه د لزوم صفقه نه مانع اوددې مانعيت کمزورې دې.نو ددې وجه خيارعيب دخيارروؤيت او خيار شرط نه اضعف شو او قانون دا دې چې اقوی د اضعف نه وړاندې وی ځکه د خيارروؤيت او خيارشرط بيان وړاندې اوشو او وروسته د خيارعيب

**وجه اضافة الخيارالى العيب**❀په خيارعيب کې د خياراضافت،عيب ارخ ته د ،،اضافة الشئ الى السبب،، د قبيلې نه دې.ځکه چې په خيارعيب کې ،عيب د خيار حاصلولو سبب دې.عيب هغه ته وائی،چه د هغې نه د شی اصل فطرت سليمه خالی وی.او ددې په وجه هغه شیٔ ناقص شمارلې شی.

### مشتری ته د عيب ښکاره کيدلو نه روسته د بيع حکم

وإذا اطلع المشتري على عيب في المبيع که مشتری په مبيع کې په څه عيب باندې خبرشو فهو بالخيار نو ده ته اختيار دې إن شاء أخذه بجميع الثمن ،که غواړی.نو مبيع دې د پوره ثمن په عوض واخلی وإن شاء رده اوکه غواړی.نو واپس دې کړی.

حل اللغة: ① اطلاع،خبريدل ② ،المشتری،اخستونکې، ③ الاخذ،اخستل، ④ جميع،ټول

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که مشتری په مبيع کې په څه عيب باندې خبرشو.نو مشتری ته اختيار دې.که زړه ئې غواړی.نود پوره ثمن په عوض دې واخلی.او که زړه ئې غواړی.نو مبيع دې واپس کړی.

لأن مطلق العقد يقتضي وصف السلامة، ځکه چې مطلق عقد د بيع صحيح سالم کيدلو تقاضا کوی فعند فوته يتخير نود سلامتوالی وصف فوت کيدلو په وخت به مشتری ته خيار حاصل وی كي لا يتضرر بلزوم ما لا يرضى به چې مشتری د هغه شیٔ په لازميدلو سره ضرر او نه مومی.په کوم چې دې راضی دې.

حل اللغة: ① السلامة،دعيب نه پاکوالې، ② فوات،فوت کيدل، ③ يتضرر،ضرر رسيږی ④ يرضی ، خوښوی

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الكفاية (٥\٥٤٦) والكفاية (٥\٥٤٦) والخانية (٢\٣٦٢) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٥١)-

تشريح:- دليل دادې چه مطلق عقد تقاضا کوی چه معقودعليه او بيع د عيبونو نه صحيح سالم وی يعنی د مطلق عقد تقاضا داده چه بيع د عيبونونه صحيح سالم وی.لکه څنګه چې د رسول ﷺ حديث ددې شاهد دې.ارشاد دې چه «أن رسول الله ﷺ إشترى من عداء بن خالد بن هوذة عبدا او كتب في عهدته هذا ما اشترى محمد رسول الله ﷺ من عداء بن خالد بن هوذة عبدا الأداء ولا غائلة ولا خبثة بيع المسلم من المسلم» په حديث کې د داء نه مراد هغه ناروغی (ناروغی (بيماری)) ده.کومه چې په نس يا زړه وغيره کې وی.اود غائله نه مراد هغه عيبونه دی.کوم چې د افعالو د قبيلې څخې وی.لکه د غلام بهګوړه کيدل (يعنی تختيدل)،غل کيدل،اود خبثة نه مراد په غلام کې د بل کس استحقاق ښکاره کيدل دی.او بعضو وئيلی دی.چه د خبثة نه جنون مراد دې.اوس به د حديث ژباړه دا وی.چه ،، رسول الله ﷺ د عداء بن خالد بن هوذة ؓ نه يو غلام واخستلو.او يو تحرير ئې اوليکلو.چه محمدرسول الله ﷺ د خالدبن هوذه ؓ نه کوم غلام واخستلو.په دې کې نه څه جسمانی ناروغی (ناروغی (بيماری)) وی.او نه څه باطنی عيب وی.او نه دده بل څوک مستحق وی.(دا) د مسلمان بيع مسلمان سره ده،، ددې حديث نه هم معلوميږی.چه عقد د بيع د سلامتيا تقاضا کوی.اود عيب موجود کيدلو په صورت کې سلامت وصف فوت کيږی.نود سلامت وصف د فوت کيدلو په وجه مشتری ته اختيار حاصل وی.چه مشتری په دې ضرر کې اخته نشی.په کوم چې دې راضی نه دې.حالانکه رضامندی په حقيقت د بيع کې داخل ده.نود رضامندئ د فوت کيدلو په وجه ده ته اختيار حاصل وی.

وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُمْسِكَهُ اود مشتری لپاره دا جائز نه دی.چه بيع رد کړی وَيَأْخُذَ النُّقْصَانَ او (د بائع نه) دنقصان په اندازه واخلی.لِأَنَّ الْأَوْصَافَ لَا يُقَابِلُهَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ فِي مُجَرَّدِ الْعَقْدِ خکه چې صرف په عقدکې د اوصاف په مقابله کې د ثمن نه هيڅ نه کميږی.

حل اللغة:- ① الامساك،ايساريدل،② الاوصاف،جمع د وصف،صفت،③ مجرد العقد،صرف عقد

تشريح:- اومشتری ته به دا اختيار نه وی.چه دې عيب داره مبيع خان سره اوساتی.اود بائع نه د ثمن هغه مقدار واپس واخلی.کوم چې د عيب په وجه کم شوی دې.مثلا هغه مبيع چې عيب داره نه وی.د هغې قيمت زر روپئ دې.اود عيب داره قيمت اته سوه روپئ دې.نو دوې (دوه) سوه روپو ته به د نقصان مقدار وئيلې شی.

دليل دادې.چه دعيب په وجه د بيع وصف فوت کيدل اوپه عقد محض کې د اوصافو په مقابله کې د ثمن هيڅ برخه نه راځی.او هرکله چې د اوصافو په مقابله کې ثمن نه راځی.نود اوصافو په کميدلو سره د ثمن هيڅ برخه نه راځی.او هرکله چې د اوصافو په مقابله کې ثمن نه راځی.نود اوصافو په کميدلو سره به ثمن نه کميږی.په دې وجه وئيلی شوی دی.چه مشتری به عيب دار مبيع خان سره ساتی.اوده ته به دا اختيار نه وی.چه د ثمن نه د نقصان مقدار واپس واخلی.

وَلِأَنَّهُ لَمْ يَرْضَ بِزَوَالِهِ عَنْ مِلْكِهِ بِأَقَلَّ مِنَ الْمُسَمَّى خکه چې بائع مبيع د مقرره ثمن نه د کم په عوض د خپل ملك نه په وتلو باندې نه دې راضی شوې فَيَتَضَرَّرُ بِهِ (نو په داسې کاوه کې) ده ته ضرر رسيږی وَدَفْعُ الضَّرَرِ عَنِ الْمُشْتَرِي مُمْكِنٌ بِالرَّدِّ بِدُونِ تَضَرُّرِهِ اود بائع د ضرر اوچتولو نه بغير د مشتری ضرر لرې کول په رد کاوه سره ممکن دې.

حل اللغة:- ① يرضى،راضی کيږی،② زوال،ختميدل،③ الدفع،لرې کيدل،④ ضرر،نقصان

تشريح:- په دې عبارت سره دوهم دليل ذکر کوی چې بائع د مقررشوی ثمن نه د کم په عوض باندې په دې نه راضی کيږی.چې مبيع د خپل ملك نه اوباسی.نو که مشتری مبيع خپل خان سره اوساتلو.اود بائع نه ئې د نقصان مقدار واپس واخستلو.نود ثمن د مقرر مقدار نه د کم عوض ورکول لازميږی.او په دې کې ښکاره د بائع ضرر دې.نود بائع ددې ضرر نه د بچ کيدلو لپاره مشتری ته عيب داره مبيع د خان سره د ساتلو،اود نقصان مقدار اختيار ورنکړې شو.پاتې شو دا سوال چې د عيب داره مبيع د پوره ثمن په عوض اخستلوکې دمشتری نقصان دې.نو ددې ځواب دادې چه بائع ته د ضرر رسولو نه بغير مشتری له د ضرر لرې کول ممکن دی.په دې طريقه چې مشتری عيب داره مبيع بائع ته واپس کړی.او خپل پوره ثمن واپس واخلی.په دې صورت کې به مشتری ته هم نقصان اونه



رسی.او بائع به هم د ضرر نه بچ شی.

وَالْمُرَادُ عَيْبٌ كَانَ عِنْدَ الْبَائِعِ اود عيب نه مراد هغه عيب دې.کوم چې بائع سره (پيدا شوی) وی وَلَمْ يَرَهُ الْمُشْتَرِي عِنْدَ الْبَيْعِ اومشتری د عقدبيع په وخت يا د قبضه په وخت دا نه وی کتلی وَلَا عِنْدَ الْقَبْضِ لِأَنَّ ذَلِكَ رِضًا بِهِ خکه چې عيب ليدل په دې باندې رضامندی ده.

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمانی.چه د خيارعيب ثابتيدلو لپاره شرط دادې.چه عيب د بائع په قبضه کې پيدا شوې دې.اومشتری نه دا د عقدبيع په وخت کتلې وو.اونه ئې د قبضه په وخت کتلې وو.خکه که کتلې ئې وو.او قبضه ئې کړې وی.نودا به په دې عيب باندې رضامندی وی.اود رضامندی ښکاره کيدلو نه روسته خيارعيب باته نه پاتې کيږی.

## د عيب تعريف

قَالَ وَكُلُّ مَا أَوْجَبَ نُقْصَانَ الثَّمَنِ فِي عَادَةِ التُّجَّارِ قدوری رحمه الله فرمانی.اوهر هغه شئ کوم چې د سوداګرو په عادت کې د ثمن دنقصان سبب وی فَهُوَ عَيْبٌ هغه عيب دې.

حل اللغة:- ① عادة،عرف،② اوجب،پيدا کوی ③ ،التجار،جمع دتاجر،سوداګر،④ عيب،نقص

تشريح:- د کومو عيبونو په وجه چې مشتری ته خيار عيب حاصل وی.ابو الحسين قدوری رحمه الله د هغې په اړه کې يوه قاعده ذکرکړې ده.قاعده داده.چه د سوداګرو په عادت کې چې کوم شئ په ثمن کې نقصان پيدا کوی.هغه عيب شمارلې شی.

لِأَنَّ التَّضَرُّرَ بِنُقْصَانِ الْمَالِيَّةِ، خکه چې ضرر کيدل د ماليت په کميدلو سره دې وَذَلِكَ بِانْتِقَاصِ الْقِيمَةِ.اود ماليت کميدل د قيمت په کميدلو سره دې وَالْمَرْجِعُ فِي مَعْرِفَتِهِ عُرْفُ أَهْلِهِ او ددې معرفت د سوداګرو په عرف باندې موقوف دې.

حل اللغة:- ① نقصان،کميدل،② انتقاص،کميدل،③ معرفة،پيژندګلو،④ رجوع،واپس کيدل

تشريح:- دليل دا دې چې سړی ته د شی په ماليت کمولو سره ضرر رسيږی.نو ثابته شوه.چه ضرر د شی دقيمت په کميدلوسره لاحق کيږی.او په کوم شئ سره چې ضرر لاحق کيږی.هغه عيب دې.په دې وجه چې کوم شئ د شی د ثمن اوقيمت د نقصان سبب وی.هغه عيب دې.خو ددې معلومات د تاجرانو عادت او ددوی په عرف سره کيږی.

## د غلام اود صغير بعض عيبونه

وَالْإِبَاقُ اود غلام تختيدل (بهګوړه کيدل) وَالْبَوْلُ فِي الْفِرَاشِ او په بستره باندې بولې کول وَالسَّرِقَةُ فِي الصَّغِيرِ عَيْبٌ او غلاکول په ماشوموالی کې عيب دې مَا لَمْ يَبْلُغْ،ترڅو چې بالغ نه شی فَإِذَا بَلَغَ بيا چې کله بالغ شی فَلَيْسَ ذَلِكَ بِعَيْبٍ نودا عيب نه دې حَتَّى يُعَاوِدَهُ بَعْدَ الْبُلُوغِ تردې چې د بالغ کيدلو نه روسته داسې دوباره اوکړی.

حل اللغة:- ① الاباق،دغلام تختيدل،② الفراش،بستره،③ السرقة،غلا،④ الصغر،ماشومتوب ⑤ يبلغ،بلوغ ته رسی،⑥ عيب،نقصان،⑦ يعاود،عادتيږی ⑧ ،بعد،پس

تشريح:- المراد من الاباق ۞ د غلام بهګوړه کيدل (تختيدل).اباق،د سفر په موده هم عيب دې.اود سفر د مودې نه کم هم عيب دې.خکه چې د اباق په وجه د مولا منافع فوت کيږی.او په دې کې چونکه د سفر موده اود سفر نه کمه موده دواړه برابردی.په دې وجه به په دواړه صورتونوکې اباق عيب شمارلې شی.

المراد من السرقة ۞ غلا کول،که لس درهمه وی.او که د لسو درهمو نه کم وی.په دواړه صورتونوکې عيب دې.که غلا د مولا وی.او که د مولا نه د علاوه وی.دواړو صورتونوکې عيب دې.خو که د خوراك څه شئ ئې خوړلو لپاره د مولا د ملك نه اخستې وی.نودا سرقه به عيب نه وی.او که د مولا نه د علاوه د ملك نه ئې اخستې وی.نودا به عيب شمارلې شی.اوکه د مولا د ملك نه يو شئ دخرڅولو لپاره خرڅ کړی.نودا هم عيب شمارلې شی.

المراد من بول الصبی علی الفراش ۞ د ماشوم په بستره باندې واړه بول (وړوکې اودس ماتې) کول،عيب شمارلې

شي.چه کله ماشوم دومره سمجداره( پوهه ) وي.چه دې خانله خوراك څکاك کولې شي.او که دومره سمجداره نه وي.نو دده په بستره باندې واړه بول کول عيب نشي شمارلې.د صاحب د کفايه‌رحمه الله په مطابق پنځه کاله يا ددې نه د زيات عمر ماشوم په بستره باندې وړوکې اودس ماتې کول عيب دې.اوددې نه د کم عمر ماشوم په بستره باندې وړوکې اودس ماتې کول عيب نه دې.

**صورة المسئلة**@ چه په ماشوموالی کې د يوغلام تختيدل،يا په بستره باندې بولې کول، يا غلا کول،د بالغ کيدلو نه وراندې عيب دې.د بالغ کيدلو نه روسته دا شيان عيب نه شمارېږي.خوکه د بالغ کيدلو نه روسته هم ددې شيان اعاده اوشوه.نود بالغ کيدلو نه روسته به هم عيب شمارلې شی.تفصيل ددې دادې.چه غلام په ماشوم والی کې خپل مولا سره په ذکرشوی خيزونوکې د کوم يوخيز ارتکاب (جرم) اوکړلو.بيا د بالغ کيدو نه روسته ئې هم مولا سره ددې شی:ارتکاب اوکړلو.بيا مولا دا غلام خرڅ کړلو.نو که غلام مشتری سره هم ددې شی:اعاده اوکړله.نومشتری ته به ددې عيب په وجه د غلام واپس کولواختيار وي.اوکه مشتری سره غلام ددې عيب اعاده اونکړله.نو مشتری ته به د غلام واپس کاوه اختيار نه وي.د قدوری عبارت «حتي يعاوده بعد البلوغ» هم دا مطلب دې.کوم چې خادم بيان کړلو.

**وَمَعْنَاهُ** او ددې مطلب دادې **إِذَا ظَهَرَتْ عِنْدَ الْبَائِعِ فِي صِغَرِهِ** کله دا شيان بائع سره دده د خرڅولو نه روسته ښکاره شي **ثُمَّ حَدَثَتْ عِنْدَ الْمُشْتَرِي فِي صِغَرِهِ** بيا د مشتری سره (ښکاره شي) يعنی په حالت د وړوکوالی کې پيدا شي **فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ،** نو مشتری ته اختيار دې.چه دا واپس کړی **لِأَنَّهُ عَيْنُ ذَلِكَ**،ځکه چې دا بعينه هم هغه عيب دې **وَإِنْ حَدَثَتْ بَعْدَ بُلُوغِهِ** اوکه (مشتری سره) دده د بالغ کيدلو نه روسته دا شيان ښکاره شو **لَمْ يَرُدَّهُ**،نو مشتری دا نشی واپس کولې **لِأَنَّهُ غَيْرُهُ** ځکه چې دا عيب د هغې نه علاوه دې.

**حل اللغة:-** ① **ظهرت**،ښکاره شو، ② **حدثت**،پيدا شو، ③ **رد**،واپس ، ④ **المشتري**،اغوستونکې

**تشريح:-** ددې مسئلې په نور وضاحت کې صاحب دهدايه‌رحمه الله فرمائيلی دی.که په ذکر شوی عيبونوکې کوم عيب په ماشوموالی کې بائع سره ښکاره شو.بيا هم په ماشوموالی کې دا عيب مشتری سره ښکاره شو.نو مشتری ته د خپل خيارعيب لاندې ددې غلام واپس کاوه اختيار شته.ځکه کوم عيب چې مشتری سره ښکاره شوې دې.دا هم هغه عيب دې.کوم چې بائع سره ښکاره شوې وو.اوکه عيب بائع سره د غلام په ماشوموالی کې پيدا شو.او بائع په ماشوموالی کې دا غلام خرڅ کړلو.خو مشتری سره ددې عيب اعاده د بالغ کيدلو نه روسته اوشوه.نو مشتری ته به خيارعيب حاصل نه وي.او ددې غلام واپس کاوه اختيار به نه وي.ځکه چې د غلام بالغ کيدلو نه روسته کوم عيب مشتری سره ښکاره شوې دې.دا د هغه عيب نه علاوه دې.کوم چې په ماشوموالی کې بائع سره ښکاره شوې وو.اوکه مشتری سره په مبيع کې څه نوې عيب پيدا شي.نو ددې په وجه مشتری ته خيارعيب نه حاصليږي.په دې وجه په دې صورت کې مشتری ته د غلام واپس کاوه اختيار نشته.

**وَهٰذَا** اوپه دې حکم کې توپير دې **لِأَنَّ سَبَبَ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ يَخْتَلِفُ بِالصِّغَرِ وَالْكِبَرِ،** ځکه چې ددې څيزونو سبب د بلوغ او عدم بلوغ په وجه مختلف کيږي **فَالْبَوْلُ فِي الْفِرَاشِ فِي الصِّغَرِ لِضَعْفِ الْمَثَانَةِ،** چې په ماشوموالی کې په بستره باندې بولې کول، د مثانې دکمزورئ په وجه دی **وَبَعْدَ الْكِبَرِ لِدَاءٍ فِي بَاطِنِهِ** اود بالغ کيدلو نه روسته د اندرونی بيمارئ په وجه دی.

**حل اللغة** ① **يختلف**،مختلف کيږي، ② **البول**،متيازې، ③ **ضعف**،کمزوری، ④ **الداء**،ناروغی (ناروغی (بيماری))

**تشريح:-** صاحب دهدايه‌رحمه الله فرمائی.چه د بالغ کيدلو نه روسته ښکاره شوې عيب، د ماشوموالی د عيب نه بدل ځکه دې.چه د ذکرشوی عيبونو سببونه د ماشوموالی اود بالغ کيدلو په وجه مختلف دی.چه په ماشوموالی کې په بستره باندې بولې کول د مثانه د کمزورئ په وجه کيږي.اود بالغ کيدلو نه روسته ددې سبب څه بله اندرونی ناروغی (ناروغی (بيماری)) وي.



**وَالْإِبَاقُ فِي الصِّغَرِ لِحُبِّ اللَّعِبِ** اود غلام په ماشوموالی کې بهګوړه کيدل د لوبو سره د مينې په وجه دی **وَالسَّرِقَةُ لِقِلَّةِ الْمُبَالَاةِ،** او غلاکول د ناپوهتيا ( کم عقل توب) په وجه دی **وَهُمَا بَعْدَ الْكِبَرِ لِخُبْثٍ فِي الْبَاطِنِ** اودا دواړه خبرې د بالغ کيدلو نه روسته د باطنی نقصان په وجه دی.

**حل اللغة:-** ① **حب**،محبت ② ،**اللعب**،لوبې ③ ،**الخبث**،نقصان ④ ،**باطن**،د ظاهر خلاف

**تشريح:-** اودغه ډول د غلام په ماشوموالی کې تختيدل، د لوبو سره د مينې په وجه وی.اود غلا سبب بې پرواهی اوناپوهی وی.خود بالغ کيدلو نه روسته ددې سبب باطنی خباثت دې.

**وَالْمُرَادُ مِنَ الصَّغِيرِ مَنْ يَعْقِلُ،** عيبا اود صغير نه مراد هغه کس دې.چه دې په عيب پوهيږي **فَأَمَّا الَّذِي لَا يَعْقِلُ فَهُوَ ضَالٌّ لَا آبِقٌ** اوکوم بچې چې د سره په خبره نه پوهيږي.دې بې لارې دې.بهګوړه ( تختيدونکې) نه دې. **فَلَا يَتَحَقَّقُ عَيْبًا** نودا عيب به نه ثابتيږي.

**حل اللغة:-** ① **يعقل**،پوهيږي، ② **ضال**،ورك شوېض، ③ **ابق**،تختيدلې، ④ **يتحقق**،ثابتيږي

**تشريح:-** علامه مرغينانی‌رحمه الله فرمائی.چه په متن کې د صغير نه مراد پوهې ماشوم دې.ګنې بالکل ناپوهه ماشوم که چرته لاړشی.نو ده ته بې لارې ( نافرمانه) ونيلې شی.خوتختيدلې نشی ونيلې.او بې لاره کيدل عيب نه وی.په دې وجه ده باندې د اباق حکم نه جاری کيږي.

## په صغرکښې د جنون عيب

**قَالَ** ( جامع صغيرکې ) فرمايې **وَالْجُنُونُ فِي الصِّغَرِ عَيْبٌ أَبَدًا** و ليونتوب په ماشوموالی کې هميشه لپاره عيب دې **وَمَعْنَاهُ: إِذَا جُنَّ فِي الصِّغَرِ فِي يَدِ الْبَائِعِ** او ددې معنی دا ده.که په حالت د وړوکوالی کې د بائع په قبضه کې مجنون شو **ثُمَّ عَاوَدَهُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي فِيهِ أَوْ فِي الْكِبَرِ** بيا د مشتری په قبضه کې په ماشوموالی کې يا د بالغ کيدلو نه روسته ليونتوب واپس راغې. **يَرُدُّهُ** مشتری به ئې بائع ته واپس کوی

**حل اللغة:-** ① **الجنون**،ليونتوب، **ابدا**،هميشه، ② **يد**،قبضه، ③ **عظم**،غټوالې

**تشريح:-** په جنون او اغماء کې توپير دې.چه د جنون په وجه انسان مسلوب العقل جوړيږي.اود اغماء په وجه مستورالعق ګرځی.بعض حضرات مشائخ فرمائی.چه جنون مطلقاً عيب دې.اګرچه يوه ساعت وی.او بعض فرمائی.که د يوې ورځې او شپې ( شواروز) نه زيات جنون پاتې شو.نو هغه عيب دې.او يوه ورځ او شپه يا ددې نه کم جنون عيب نه دې.او بعض فرمائی.که جنون پيوسته پاتې شی.نو عيب دې.اوکه پيوسته نه وی.نو عيب به نه شمارلې کيږي.

**صورة المسئلة**@ غلام يا وينځې ته په ماشوموالی کې جنون لاحق شو.نودا به هميشه عيب شمارلې شی.يعنی که په ماشوموالی کې د بائع په قبضه کې مجنون شو.بيا د مشتری په قبضه کې واپس راغی؛که په ماشوموالی کې وی.او که د بالغ کيدلو نه روسته وی.نودا جنون به عيب شمارلې شی.او مشتری ته به ددې په وجه د مبيع واپس کاوه اختيار وی.

**لِأَنَّهُ عَيْنُ الْأَوَّلِ،** ځکه چې دا بعينه مخکنې عيب دې **إِذِ السَّبَبُ فِي الْحَالَيْنِ مُتَّحِدٌ** ځکه چې په دواړه حالتونوکې سبب متحد دې **وَهُوَ فَسَادُ الْبَاطِنِ** اوهغه د عقد فاسد کيدل دی.

**حل اللغة:-** ① **عين**،هم هغه ، ② **متحد**،يو دې، ③ **فساد**،خراب، ④ **الحالين**،تثنيه دحال، حالت

**تشريح:-** دليل دا دې چې کوم جنون د مشتری په قبضه کې لاحق شو.دا هم هغه جنون دې.کوم چې د بائع په قبضه کې غلام يا وينځې ته لاحق شوې وو.او ددې وجه داده.چه د جنون سبب په بلوغ اوعدم بلوغ دواړه حالتونوکې يو دې.يعنی د عقل فاسديدل ( خرابيدل).نو هرکله چې په دواړه حالتونوکې د جنون سبب يو دې.نود غلام بالغ کيدلو نه روسته چې د مشتری په قبضه کې کوم جنون لاحق شوې دې.دا به هم هغه جنون وی.کوم چې د بائع په قبضه کې

د بالغ کېدلو نه وړاندې غلام ته لاحق شوې وو. او هرکله چې هم هغه جنون دې. کوم چې بائع سره پيدا شوې وو. نو دا به يقيناً مشتري لپاره د خيارعيب سبب وي.

وَلَيْسَ مَعْنَاهُ او ددې مطلب دانه دې أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ الْمُعَاوَدَةُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي چه د مشتري سره ددې عود کول شرط نه دی لِأَنَّ اللهَ تَعَالَى قَادِرٌ عَلَى إِزَالَتِهِ ځکه چې الله تعالى ددې په ختمولو باندې قادر دې وَإِنْ كَانَ قَلَّمَا يَزُولُ فَلَا بُدَّ مِنَ الْمُعَاوَدَةِ لِلرَّدِّ اګرچه کم ختميږي. نود غلام واپس کاوه لپاره د ليونتوب واپس راتګ ضروري دی.

حل اللغة:- ① المعاودة واپس کېدل، ② قادر، قدرت لرونکې، ③ يزول، زائله کيږي، ④ فلا بد، ضروري ده

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د مصنف د قول «لم عيب ابدا» معنى دا نه ده. چه د مشتري په قبضه کې جنون واپس کېدل شرط نه دی. لکه چې د ظاهر عبارت نه دا وهم کيږي. ددې وجه داده. چه الله تعالى په دې قادر دې. چه دې جنون زائل کړي. اګرچه زائل کېدل کم واقع شوی دی. نود خيارعيب لاندې د غلام واپس کاوه لپاره د مشتري په قبضه کې جنون واپس کېدل ضروري دی. که د مشتري په قبضه کې جنون واپس نشو. نو مشتري ته به خيارعيب لاندې غلام واپس کاوه اختياز نه وي. اودا به ګنړلې شي. چه الله تعالى په خپل قدرت سره جنون زائل کړې دې. وما ذالك على الله بعزيز.

### په وينځه يا غلام کښې د تيخرګ يا د خولې بدبوئي

قَالَ وَالْبَخَرُ وَالذَّفَرُ عَيْبٌ فِي الْجَارِيَةِ فرمائي. او په وينځه کې د خولې بدبوئي اود تيخرګ بدبوئي عيب دې لِأَنَّ الْمَقْصُودَ قَدْ يَكُونُ الْإِسْتِفْرَاشُ وَطَلَبُ الْوَلَدِ ځکه چې کله کله د وينځې نه مقصود فراش جوړول دی وَهُمَا يُخِلَّانِ بِهِ اود دواړه خبرې په دې کارکې مخل دی.

حل اللغة:- ① البخر، د خولې بدبوئي، ② الذفر، د تيخرګ بدبوئي، ③ الاستفراش، فراش جوړول يعنى وطى کول، ④ يخل، خلل پيدا کوي

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه دخولې بدبوئي، اود تيخرګ بدبوئي په وينځه کې عيب شمارلې شي. خو په غلام کې عيب نشي شمارلې. دليل دادې. چه کله کله وينځه ښکلول، غاړه غتېي کېدل، او جماع کول مقصود وي. اودا دواړه په دې مقصد کې مخل دی. په دې وجه وينځه کې داسې قسمه بدبوئي عيب شمارلې شوې دې.

وَلَيْسَ بِعَيْبٍ فِي الْغُلَامِ او په غلام کې دا بدبوئي عيب نه دې لِأَنَّ الْمَقْصُودَ الْإِسْتِخْدَامُ ځکه چې د غلام نه خدمت اخستل مقصود وي وَلَا يُخِلَّانِ بِهِ اودا دواړه خبرې په دې کار کې مخل نه دی إِلَّا أَنْ يَكُونَ مِنْ دَاءٍ مګر داچه بدبوئي د بيمارۍ په وجه وي لِأَنَّ الدَّاءَ عَيْبٌ ځکه چې ناروغي (ناروغي (بيماري)) عيب دې

حل اللغة:- ① الاستخدام، خدمت اخستل، ② داء، مرض، ③ الجارية، وينځه، ④ الولد، بچې

تشريح:- اود غلام نه چونکه خدمت اخستل مقصود وي. اودا بدبوئي په دې مقصد کې مخل نه وي. په دې وجه غلام کې دا عيب نه دې شمارلې شوې. خوکه د بيمارۍ په وجه دا بدبوئي پيدا شوې وي. نو په غلام کې به هم عيب شمارلې شي. ځکه چې ناروغي (ناروغي (بيماري)) بلاشبه عيب دې.

### په وينځه يا غلام کښې زنا ياد ولدالزناء عيب

وَالزِّنَا وَوَلَدُ الزِّنَا عَيْبٌ فِي الْجَارِيَةِ او زناکول او ولدالزنا کېدل په وينځه کې عيب دې دُونَ الْغُلَامِ په غلام کې نه دې لِأَنَّهُ يُخِلُّ بِالْمَقْصُودِ فِي الْجَارِيَةِ ځکه چې په وينځه کې دا مخل بالمقصود دې وَهُوَ الْإِسْتِفْرَاشُ وَطَلَبُ الْوَلَدِ او مقصود د وينځې فراش جوړول او ددې نه بچې پيداکول دی.

تشريح:- مسئله داده. چه د وينځې زناکاره کېدل، او ددې د زنا د نطفې نه پيداکېدل، دواړه خبرې په وينځه کې عيب دې. او په غلام کې دواړه خبرې عيب نه دې. په وينځه کې عيب ځکه دې. چه هم دا دواړه خبرې په هغه مقصود کې



خلل اچوي. کوم چې وينځې سره متعلق دې. چې د وينځې زناکاره کېدل، ددې په فراش جوړولو کې مخل دی. ځکه چې طبعيت سليمه د داسې ښځې فراش جوړولو نه نفرت کوي. اود وينځې ولدالزناء کېدل د ولدېه طلب کې مخل دی. په دې طريقه چې مولا به د بچی پيدا کېدلو نه په دې وجه ځان ساتي. چه خلګ به دده بچی ته شرم ورکوي. اودا به وائي. چه دا د ولدالزناء بچې دې.

وَلَا يُخِلُّ بِالْمَقْصُودِ فِي الْغُلَامِ او په غلام کې مخل بالمقصود نه دی وَهُوَ الْإِسْتِخْدَامُ، او هغه خدمت اخستل دی إِلَّا أَنْ يَكُونَ الزِّنَا عَادَةً لَهُ مګر داچه زنا دده عادت جوړ شوې دې عَلَى مَا قَالُوا لکه چې مشائخو ذکر کړې دی لِأَنَّ اتِّبَاعَهُنَّ يُخِلُّ بِالْخِدْمَةِ ځکه چې د غلام ښځو پسې د ګرځېدلو په وجه په خدمت کې خلل واقع کيږي.

تشريح:- اوذکر شوې دواړه خبرې په غلام کې په دې وجه عيب نه دی. چه د غلام نه مقصود خدمت اخستل دی. او په خدمت اخستلو کې دا دواړه خبرې قطعا مخل نه دی. خو که زناکول د غلام عادت وي. يعنى باربار دده نه ددې فعل جرم شوې وي. نود غلام زانی کېدل هم شمارلې کيږي. لکه څنګه چې د مشائخو رائې ده. ځکه چې ددې عادت په وجه کله دا غلام د ښځو په چکرکې پريوځي. نو خاورې به د مولا خدمت اوکړي. نو معلومه شوه. چه د غلام د زنا عادت کېدل هم عيب دې.

### په غلام يا وينځه کښې د کفر عيب

قَالَ (وَالْكُفْرُ عَيْبٌ فِيهِمَا) او کافر کېدل په غلام او وينځه دواړو کې عيب دې لِأَنَّ طَبْعَ الْمُسْلِمِ يَنْفِرُ عَنْ صُحْبَتِهِ ځکه چې د مسلمان طبيعت د کافر د صحبت کاوه نه نفرت کوي وَلِأَنَّهُ يَمْتَنِعُ صَرْفُهُ فِي بَعْضِ الْكَفَّارَاتِ او ځکه چې په بعض کفاراتو کې ددوی خرچ کول ممتنع دی فَتَخْتَلُّ الرَّغْبَةُ په دې وجه په شوق کې خلل واقع کيږي.

حل اللغة:- ① طبع، طبيعت، ② يتنفر، نفرت کوي ③ ، صرف، ورکول، ④ الرغبة، شوق

تشريح:- مسئله، کفر په غلام او وينځه دواړو کې عيب دې. او ① دليل دادې. چه د مسلمان طبيعت دده د صحبت نه نفرت کوي. اود صحبت نه نفرت کول د رغبت د کموالي سبب دې. اود رغبت کم والې د ثمن د نقصان سبب دې. اوکوم شئ چې دثمن د نقصان سبب وي. هغه عيب وي. په دې وجه کفر په دواړو کې عيب شمارلې کيږي. ② دوهم دليل دې. چه په بعض کفاراتو کې د کافر آزادول منع دی. لکه په کفاره د قتل کې بالاتفاق منع دی. او په کفاره د يمين اوپه کفاره د ظهارکې د بعضو په نيز ممتنع دی. نو ددې نقصان په وجه کافر ارخ ته شوق کم کيږي. اود رغبت دکموالي په وجه په ثمن کې نقصان واقع کيږي. اود ثمن نقصان د عيب کېدلو علامت دې. په دې وجه کفر عيب اوګرځولې شو.

فَلَوِ اشْتَرَاهُ عَلَى أَنَّهُ كَافِرٌ بيا که دانې په دې شرط واخستلو. چه دې کافر دې فَوَجَدَهُ مُسْلِمًا خو دې ئې مسلمان اوموندلو لَا يَرُدُّهُ نو دا نشي واپس کولې لِأَنَّهُ زَوَالُ الْعَيْبِ ځکه چې دا د عيب ختميدل دی.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. که يوغلام د کافر کېدلو په شرط واخلي. خودا غلام مسلمان اوخيجي. نو زمونږ په نيز به مشتري ته د واپس کولو اختيار نه وي. ځکه چې د غلام د کافر په ځائې مسلمان کېدل عيب نه دی. بلکه زوال د عيب دې. او زوال د عيب، د خيارعيب سبب نه وي. په دې وجه په دې صورت کې د مسلمان غلام واپس کاوه اختيارنشته. خ

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يَرُدُّهُ، اود امام شافعي رحمه الله په نيز واپس کولای شی لِأَنَّ الْكَافِرَ يُسْتَعْمَلُ فِيمَا ځکه چې کافر په بعض داسې کارونو کې لګيا کولای شی لَا يُسْتَعْمَلُ فِيهِ الْمُسْلِمُ، چې په هغې کې مسلمان نشی کېدلې وَفَوَاتُ الشَّرْطِ بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ اود شرط فوت کېدل په منزله د عيب دی.

تشريح:- خود امام شافعي رحمه الله په نيز په دې صورت کې هم د خيارعيب لاندې غلام واپس کاوه اختيار شته. ځکه چې کافرغلام په بعض داسې امورو کې کار کوي. چه په هغې کې مسلمان غلام پکار نه راځي. مثلاً د لمونځ په وخت د

کور یا د دوکان حفاظت، کافرغلام بې تکلفه کولې شی.خو مسلمان غلام لپاره به د جماعت په پرېښولو کې تکلیف وی.دغه ډول په بعضو وختونو کې په سپکو اوذلیلو کارونو کې خدمت اخستل مقصود وی.اودا کارونه خو نه د خپل خان لپاره مناسب گنړی.او نه ئې د مسلمان غلام لپاره مناسب گنړی.نو معلومه شوه.چه کله کله کفر هم ،، مرغوب فیه،، وصف وی.اود مرغوب فیه وصف فوت کیدل د عیب په منزله کې دی.نو گویا د کافرکیدلو شرط لگول،اود اخستلو په صورت کې دکفر فوت کیدل د عیب په منزله کې دی.اود عیب په وجه خیارعیب حاصلیږی.په دې وجه په دې صورت کې هم مشتری ته د خیارعیب لاندې مسلمان غلام واپس کاوه اختیارشته دې.

**په بالغه وینځه کښې حیض نه راتلو یا مستحاضه کیدل**

> قَالَ: فَلَوْكَانَتْ الْجَارِيَةُ بَالِغَةً مصنف ﷫ فرمائی.که وینځه بالغه وی. لَاتَحِيضُ دې ته حیض نه راځی أَوْهِيَ مُسْتَحَاضَةٌ یا دې ته د استحاضه وینه جاری وی فَهُوَعَيْبٌ نودا عیب دې.لِأَنَّ ارْتِفَاعَ الدَّمِ وَاسْتِمْرَارَهُ عَلَامَةُ الدَّاءِ خکه چې د وینې بندیدل، او ددې برابر جاری پاتې کیدل د بیمارئ علامت دې.

**حل اللغة:-** ① **الجاریة**،وینځه، ② **الدم**،وینه، ③ **استمرار**،جاری والې، ④ **علامة**،نښه

**تشریح:-** نا بالغه ښځې ته اوسن ایاس ( د پیغلتوب وخت ) ته د رسیدلو نه روسته حیض نه راتگ عیب نه دې. او بالغه ښځې ته عیب نه راتگ او د استحاضې وینه برابر جاری کیدل دواړه عیب دی.خکه چې دا دواړه د بیماریانو علامت دې.

> وَيُعْتَبَرُفِي الْإِرْتِفَاعِ أَقْصَى غَايَةِ الْبُلُوغِ اود وینې په بندیدلوکې د بلوغ انتهائی حد معتبر دې وَهُوَسَبْعَ عَشْرَةَ سَنَةً فِيهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] اودا د ابوحنیفه ﷫ په نیز د ښځې په حق کې اوولس کاله دی.

**حل اللغة:-** ① **یعتبر**،معتبرولې شی، ② **اقصی**،آخری، ③ **غایة**،حد ، ④ **سنة**،کال

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که اخستې شوې وینځه بالغه شوه.او دې ته د حیض وینه نه راځی.حالانکه دا د بلوغ انتهاء ته رسیدلې وی. یا ددې د استحاض وینځه برابر راځی.نود وینځې په حق کې دا دواړه خبرې عیب دی.اود امام ابوحنیفه﷫ په نیز د بلوغ د انتهاء حد ښځې په حق کې (۱۷) کاله دی.

> وَيُعْرَفُ ذٰلِكَ بِقَوْلِ الْأَمَةِ اودا به ددې وینځې په وئیلو سره معلومیږی فَتُرَدُّ إِذَا انْضَمَّ إِلَيْهِ نُكُولُ الْبَائِعِ نو کله چې ددې سره د بائع د قسم نه انکار ملاؤ شو.نو وینځه به واپس کولای شی قَبْلَ الْقَبْضِ وَبَعْدَهُ وَهُوَالصَّحِيحُ د قبضه نه وړاندې هم اود قبضې نه روسته هم،دا صحیح ده.

**حل اللغة:-** ① **الامة**،وینځه، ② **الضم**،یوخائې کیدل، ③ **نکول**،انکار ، ④ **البائع**،اغوستونکې

**تشریح:-** ددې عبارت مفهوم او مطلب دا دې چې په ذکر شوی صورت کې کله مشتری د قاضی په عدالت کې د حیض نه راتگ و دعوه اوکړله.نوقاضی به د مشتری ته د انقطاع د مودې په اړه کې پوښتنه کوی. چې وینه کله نه ده راللې؟ نوکه مشتری کمه موده ذکر کړله.نو دده دعوه به نشی اوریدلې.یعنی د مشتری دعوه به رد کولې شی.اوکه اوږده موده ئې ذکرکړله.نو دده دعوه به اوریدلې شی.

داوږدې مودې ذکر کاوه په صورت کې چې هرکله قاضی دده د عوې سماعت پیل کړلو.نو قاضی به د بائع نه سوال پوښتنه کوی.چه آیا کومه خبره چې مشتری بیانوی.صحیح ده؟ که بائع اووئیل.چه آؤ صحیح ده.نو ددې عیب انقطاع په وجه که مشتری وینځه واپس کول اوغواړی.نو قاضی به دا واپس کوی.

اوکه بائع اووئیل.چه دا عیب ماسره د اوسیدلو په موده کې نه وو.بلکه د مشتری سره پیدا شوې دې.نو په دې

[1]) لکن القول الراجح هو اعتبار خمسة عشر سنة و هو قول الصاحبين ﷬ كذا فى العناية (٨,٩\٦) نقلاً عن القول الراجح(٢٧\٢)۔



صورت کې به مشتری د بائع سره د اوسیدلو په حالت کې د وینځې د انقطاع حیض مدعی وی.او بائع به ددې منکر وی.او چونکه انقطاع د حیض یومنفی شئ دې.په دې وجه به په دې باندې شهادت هم نه قبلیږی.خکه چې شهات په داسې شئ باندې قبلولې شی.چه په هغې باندې خبریدل ممکن وی.او کومه انقطاع چې عیب شمارلې کیږی.په دې باندې د گواهانو خبریدل ناممکن دی.نود مشتری یعنی د مدعی د اړخه د گواهانو گواهی ورکول ناممکن وی.

اوس که مشتری د بائع یعنی د مدعی علیه اومنکر نه د قسم مطالبه اوکړی.نود بائع څخه به قسم اخستلې شی.بائع که قسم اوخوړلو.نودې به بری وی.او مشتری له به د وینځې واپس کاوه اختیار نه وی. او که بائع د قسم خوړلونه انکار اوکړلو.نو مشتری ته به د خیارعیب لاندې د وینځې واپس کاوه اختیار وی.

او که مشتری دا دعوه اوکړله.چه وینځې ته د استحاضه وینه برابر جاری ده.اودا عیب بائع سره هم موجود وو.خو بائع ددې نه انکار اوکړلو.نود مشتری څخه به د گواهانو مطالبه کولې شی.خکه چې د وینې برابر راتگ یوداسې شئ دې.چه په دې باندې خبریدل ممکن دی.دسړو خبریدل اگرچه ممکن نه دی.خود ښځو خبریدل ممکن دی.اوداسې امور چې په هغې باندې سړی نشی خبریدلې.په هغې کې د ښځو شهادت قبلولې شی.

نو که مشتری برابر د استحاضې وینې په برابر راتگ و باندې شهادت پیش کړلو.نود استحاضې د عیب ثبوت کیدلې شی.او مشتری ته به د خیارعیب لاندې د وینځې د واپس کاوه اختیار وی.او که مشتری شهادت پیش نکړلو.نو د بائع څخه به قسم اخستلې شی.که بائع قسم اوخوړلو.نو دې به بری شی.او مشتری ته به خیارعیب حاصل نه وی.او که ده د قسم خوړلو نه انکار اوکړلو.نو مشتری ته به خیارعیب حاصل وی.اود وینځې واپس کاوه اختیار به حاصل وی.

**الاختلاف في المدة الطويلة** ۞ دا خبره یاد ساتئ چې په مسئله کې چې د اوږدې مودې کوم ذکر راغلې دې نو دا اوږده موده د امام ابویوسف﷫ په نیز درې میاشتې دی.اود امام محمد﷫ په نیز څلور میاشتې اولس ورځې دی.اود امام ابوحنیفه او امام زفر﷬ په نیز دوې (دوه) کاله دی.اود هر یو په نیز چې ددې اوږدې زمانې نه کم وی.نودې ته مدت قصیره وئیلې شی.

**د عیب په ښکاره کیدلوسره مشتری لپاره د مبیع حکم**

> قَالَ: وَإِذَاحَدَثَ عِنْدَ الْمُشْتَرِي عَيْبٌ فرمائی.که ( په مبیع کې ) مشتری سره څه عیب پیدا شو فَاطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بیا مشتری په داسې عیب خبر شو كَانَ عِنْدَ الْبَائِعِ کوم چې د بائع سره وو فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ بِالنُّقْصَانِ نو مشتری ته د عیب نقصان اخستلو اختیار دې وَلَايَرُدُّ الْمَبِيعَ او مبیع نشی واپس کولې.

**حل اللغة:-** ① **حدث**،پیدا شی، ② **اطلع**،خبرشی، ③ **یرجع**،واپس اخلی، ④ **یرد**،واپس کوی

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که په مبیع کې د مشتری په قبضه کې څه نوې عیب پیداشو.بیا مشتری په هغه قدیم ( زوړ) عیب باندې هم خبرشو.کوم چې د بائع په قبضه کې په مبیع کې موجود وو.نومشتری ته د بائع نه د عیب نقصان اخستلو اختیار دې.او ددې صورت دادې.چه د قدیم( زوړ) عیب نه د سلامتیا په صورت کې به د مبیع د قیمت اندازه اوکړې شی.او بیا به د نوی عیب سره ددې مبیع اندازه اوکړې شی.ددې دواړو قیمتونو په مینځ کې چې کوم تفاوت وی.هغې ته به دعیب نقصان وئیلې شی.مثلاً د قدیم عیب نه د سلامتیا په صورت کې د مبیع قیمت لس روپۍ وو.اود عیب جدید سره اته روپۍ قیمت دې.نودا دوې (دوه) روپۍ به نقصان د عیب وی.اود عیب قدیم په وجه به مشتری ته د بائع نه ددې دوې (دوه) روپو اخستلو اختیار وی.

> لِأَنَّ فِي الرَّدِّ إِضْرَارًا بِالْبَائِعِ خکه چې د مبیع په واپس کولوکې د بائع ضرر دې لِأَنَّهُ خَرَجَ عَنْ مِلْكِهِ سَالِمًا خکه چې مبیع د بائع د ملك نه صحیح سلامت راوتلې وو وَيَعُودُ مَعِيبًا او عیب دار به واپس کیږی فَامْتَنَعَ په دې وجه واپس کول ممتنع شو.

**حل اللغة:-** ① **اضرار**،ضرر رسول، ② **سالم**،بې عیبه، ③ **یعود**،واپس کیږی، ④ **معیب**،عیب دار

**تشریح:-** البته مشتري ته به د عيب قديم په وجه د مبيع واپس كاوه اختيار نه وي.ځكه چې په مبيع واپس كاوه كې د بائع نقصان دې.په دې طريقه چې كله مبيع د بائع د لاس نه وتلې وو.نو په دې كې دا عيب جديد موجود نه وو.كوم چې د مشتري په قبضه كې پيدا شوې دې.او ددې عيب جديد سره په واپس كاوه كې سراسر د بائع ضرر دې.په دې وجه د مبيع واپس كول خو ممتنع شو.

**وَلَابُدَّ مِنْ دَفْعِ الضَّرَرِ عَنْهُ** او د مشتري نه هم چونكه ضرر لرې كول ضروري دی **فَتَعَيَّنَ الرُّجُوْعُ بِالنُّقْصَانِ** په دې وجه د نقصان عيب رجوع متعين شوه **اِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَأْخُذَهُ بِعَيْبِهٖ** مگر داچه بائع ددې جديد عيب سره د مبيع په واپس اخستلو باندې راضي شی **لِأَنَّهٗ رَضِيَ بِالضَّرَرِ** ځكه چې دې پخپل ضرر باندې راضي شوې دې.

**تشریح:-** خو چونكه دعيب قديم په وجه دمشتري هم نقصان دې.په دې وجه ددې ضرر لرې كاوه لپاره د بائع نه د عيب نقصان واپس اخستلو اختيار وركړې شوې دې.خو كه بائع د عيب جديد سره په مبيع واپس اخستلو باندې راضي شی.نو موږ ته هيڅ اشكال نشته.ځكه چې بائع پخپل ضرر باندې رضامندي ښكاره كړله.او پخپله ئې خپل حق ساقط كړې دې.

❓ دلته كې يو سوال دې.هغه داچه وړاندې تيرشوی دی.چه د اوصافو په مقابله كې ثمن نه وي.حالانكه دلته كې تاسو مشتري ته نقصان عيب وركړې دې.اود اوصافو په مقابله كې دې ثمن مقرر كړې دې.نودا د تيرشوی بيان خلاف شو.ددې ځواب دې.چه د اوصافو په مقابله كې ثمن هغه وخت وی.چه كله اوصاف حقيقتاً يا حكماً مقصود نه وی.خو كه په اخستلو كې اوصاف حقيقتاً يا حكماً مقصود وی.نو په دې صورت كې د ثمن يوه برخه د اوصافو په مقابله كې راځي.او په ذكرشوې مسئله كې هم دا خبره ده.په دې وجه دعيب قديم په وجه د فوت شوی صفت په مقابله كې چې څومره قدرې ثمن راځي.مشتري ته ددې د واپس اخستلو اختيار وركړې شوې دې.كوم چې په نقصان عيب سره تعبير شوې دې.

## د كپړې اخستلو او كټ كولو نه روسته عيب ښكاره كيدل

**قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا** فرمائی.كه يوكس كپړه واخستله **فَقَطَعَهٗ** نودا ئې كټ كړله **فَوَجَدَ بِهٖ عَيْبًا** و بيا ئې په دې كې عيب اوموندلو **رَجَعَ بِالْعَيْبِ** نومشتري دې نقصان عيب واپس واخلی **لِأَنَّهُ امْتَنَعَ الرَّدُّ بِالْقَطْعِ** ځكه چې د كټ كاوه په وجه واپس كول ممتنع شو **فَإِنَّهٗ عَيْبٌ حَادِثٌ** ځكه چې دا عيب جديد دې.

**حل اللغة:-** ① ثوب،جامه، ② قطع،كټ كول، ③ وجد،اومومی، ④ حادث،نوې پيدا شوې

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه يوسړی كپړه واخستله.اودا ئې كټ كړله.خو ګنډلې ئې نه ده.بيا په دې كپړه كې په داسې عيب باندې خبرشو.كوم چې بائع سره وو.نومشتري به د بائع نه دعيب نقصان واپس اخلی.ځكه چې د مشتري كپړه پرې كول عيب دې.اومشتري سره دعيب جديد پيدا كيدلو په صورت كې مشتري ته دعيب قديم په وجه بائع ارخ ته مبيع واپس كول جائز نه دی.ځكه چې په دې واپسئ كې د بائع ضرر دې.

**فَإِنْ قَالَ الْبَائِعُ** بيا كه بائع اووئيل **أَنَا أَقْبَلُهٗ** چې زه هم دا كټ شوې قبلوم **كَذٰلِكَ كَانَ لَهٗ ذٰلِكَ** **لِأَنَّ الْاِمْتِنَاعَ لِحَقِّهٖ** نو ده ته اختيار دې.ځكه چې واپس كول ممتنع كيدل،دده د حق په وجه وو **وَقَدْ رَضِيَ بِهٖ** حالانكه دې پخپله په دې باندې راضي شو.

**تشریح:-** خو كه بائع په دې كټ شوې كپړې اخستلو باندې راضي شو.نو مشتري دا واپس كولې شی.ځكه چې د عيب جديد په وجه د مبيع واپسی د بائع دحق په وجه ممتنع وو.نو هركله چې دې پخپله دخپل حق په ساقطولو باندې راضي شو.نو مشتري ته د مبيع په واپس كولو كې هيڅ تكليف نشته.

**فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِي** بيا كه مشتري دا خرڅ كړو **لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ** نو مشتري هيڅ هم واپس نشی اخستلې **لِأَنَّ الرَّدَّ غَيْرُ مُمْتَنِعٍ**



**بِرِضَا الْبَائِعِ** ځكه چې د بائع په رضامندئ سره واپس كول ممتنع نه دی **فَيَصِيْرُ هُوَ بِالْبَيْعِ حَابِسًا لِلْمَبِيْعِ** نو مشتري په خرڅولو سره د مبيع منع كونكې شو **فَلَا يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ** اوځكه به دې د نقصان (واپس اخستلو) رجوع نه كوی.

**حل اللغة:-** ① الحابس،ايسارونكې، ② ممتنع،منع شوې، ③ الرد،واپس كيدل، ④ يرد،واپس كوی

**تشریح:-** اوكه مشتري كټ شوې كپړه خرڅه كړله.حالانكه دا دخرڅولو نه وړاندې په عيب قديم باندې خبر شوې وو.يا د خرڅولو نه روسته خبرشو.نو په دواړه صورتونو كې مشتري ته په خيارعيب سره د رجوع اختيارنشته.ځكه چې د بائع په رضامندئ سره په عيب قديم سره د كټ شوې كپړې واپس كول ممتنع نه دی.يعنی د بائع په رضامندئ سره مشتري كټ شوې كپړه واپس كولې شی.خو كله چې په عيب قديم باندې د خبريدلو باوجود مشتري دا كټ شوې كپړه خرڅه كړله.نوګويا دې د مبيع ځان سره ساتونكې او په دې عيب باندې راضي كيدونكې شو.اوهركله چې مشتري په عيب قديم باندې راضي شو.نو اوس به ده ته د نقصان عيب اخستلو اختيار نه وي.

## په مبيع كښې د تصرف كولو نه روسته عيب ښكاره كيدل

**فَإِنْ قَطَعَ الثَّوْبَ** بيا كه كپړه ئې كټ كړله **وَخَاطَهٗ** او وې ګنډله **أَوْ صَبَغَهٗ أَحْمَرَ** يا ئې دا په سور رنګ كې رنګ كړله **أَوْ لَتَّ السَّوِيْقَ بِسَمْنٍ** يائې ستوان غوړو سره ملاؤ كړل **ثُمَّ اطَّلَعَ عَلٰى عَيْبٍ** بيا په څه عيب باندې خبرشو.

**حل اللغة:-** ① خاط،اوګنډل، ② صبغ،رنګ كړل، ③ احمر،سور رنګ، ④ سويق،ستوان ⑤ قطع،كټ كړل، ⑥ الثوب،جامه، ⑦ سمن،غوړی، ⑧ اطلع،خبرشو

**تشریح:-** كه مشتري كپړه كټ كړله.او وې ګنډله.يا ئې دا كپړه په سور رنګ كې رنګ كړله.يائې ستوان واخستل.اوپه دې كې ئې غوړی يا ګُړ ملاؤ كړل.بيا په هغه عيب باندې خبرشو.كوم چې بائع سره پيدا شوې وو.

**رَجَعَ بِنُقْصَانِهٖ** نوددې نقصان دې واپس واخلی **لِامْتِنَاعِ الرَّدِّ بِسَبَبِ الزِّيَادَةِ** ځكه چې د زياتوالی په وجه بيع واپس كول ممتنع شو **لِأَنَّهٗ لَا وَجْهَ إِلَى الْفَسْخِ فِي الْأَصْلِ بِدُوْنِهَا** په دې وجه په اصل بيع كې د زياتوالی نه بغير د فسخ كاوه هيڅ وجه نشته **لِأَنَّهَا لَا تَنْفَكُّ عَنْهُ** ځكه چې زياتوالې ددې نه نشی جدا كيدلې.

**حل اللغة:-** ① وجه،طريقه، ② دون،بغير، ③ تنفك،جدا كيږی، ④ الفسخ،ختميدل

**تشریح:-** نومشتري د عيب نقصان واپس اخستلې شی.ځكه چې مبيع سره د يو زياتی شئ مخلوط كيدلو په وجه د مبيع واپس كول ممتنع شو.ځكه كه په اصل مبيع كې بيع د زياتوالی د امله فسخ كوی نو دا ممكن نه دی ځكه چې زياتې شئ د اصل مبيع نه نشی جلا كيدلې.نود زياتوالی نه بغير په اصل مبيع كې بيع فسخ كول ځنګه ممكن كيدلې شی.

**وَلَا وَجْهَ إِلَيْهِ مَعَهَا** او په زياتوالی سره هم د فسخ كاوه څه وجه نشته **لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَيْسَتْ بِمَبِيْعَةٍ** ځكه چې زياتوالې مبيع نه دې **فَامْتَنَعَ أَصْلًا** په دې وجه واپس كول بالكل ممتنع شو.

**تشریح:-** اوكه اصل مبيع سره د زياتوالی نه واپس كوی نودا هم ممكن نه دې ځكه چې زياتې شئ مبيع نه دې.او فسخ د بيع په مبيع كې كيږی.په غيرمبيع كې نه كيږی.په دې وجه زياتوالی سره فسخ كول هم ممكن نشو.نو هركله چې بيع فسخ كول او مبيع واپس كول ممتنع شو.نود مشتري نه د ضرر لرې كاوه لپاره مشتري ته د عيب نقصان واپس اخستل جائز ګرځولې شوی دی.

## د بائع مبيع واپس اخستل

**وَلَيْسَ لِلْبَائِعِ أَنْ يَأْخُذَهٗ** او بائع ته د زياتوالی سره د مبيع اخستلو اختيار نشته **لِأَنَّ الْاِمْتِنَاعَ لِحَقِّ الشَّرْعِ** ځكه چې د واپسئ ممتنع كيدل د حق شرع په وجه دی **لَا لِحَقِّهٖ** دبائع د حق په وجه نه دی.

تشریح:- ماتن فرمائی چه بائع ته دا اختیار نشته چه ګنډلې شوې کپړه، یا رنګ شوې کپړه، یا غوړی ګډ شوی ستوان د مشتری نه واخلی. او هغه ته ثمن واپس کړی. ځکه چې د مبیع په زیاتوالی سره د بائع اړخ ته واپس کول ممتنع کیدل د بائع د حق په وجه نه دی. بلکه د شریعت د حق په وجه دی. ځکه چې مبیع سره ګډ شوی زیاتوالی د ربوا په معنی کې دې. او د ربوا حرمت د شریعت حق دې. نو هرکله چې مبیع سره ملاؤ شوې زیاتوالی د شریعت د حق په وجه ممنوع دې. نو بائع ته په زیاتوالی سره د مبیع واپس اخستلو اختیار نشته.

فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِي بَعْدَ مَا رَأَى الْعَيْبَ بیا که مشتری د عیب کتلو نه روسته دا خرڅ کړو رَجَعَ بِالنُّقْصَانِ نو د عیب نقصان واپس اخستلی شی.

تشریح:- که مشتری د عیب کتلو نه روسته دا ګنډلې شوې کپړې، یا رنګ شوې کپړې، یا غوړی ملاؤ شوی ستوان دچا په لاس باندې خرڅ کړل. نو بیاهم مشتری ته د عیب نقصان واپس اخستلو اختیار شته.

لِأَنَّ الرَّدَّ مُمْتَنِعٌ أَصْلًا قَبْلَهُ ځکه چې د مشتری د خرڅولو نه وړاندې د مبیع واپس کول بالکل ممتنع وو فَلَا يَكُونُ بِالْبَيْعِ حَابِسًا لِلْمَبِيعِ نو د خرڅولو په وجه به د مبیع منع کونکې نه وی.

حل اللغة:- ① الرد، واپس کیدل، ② اصلا، بیخی، ③ حابس، بندونکې، ④ ممتنع، منع

تشریح:- دلیل دا دې چې په کپړو یا ستوانوکې د مشتری د ملك زیاتوالی پیداکیدلو په وجه د مشتری د خرڅولو نه وړاندې د واپس کول ممتنع شوی دی. نو مشتری د خرڅولو په وجه د مبیع منع کونکې نه دې. او په کوم صورت کې چې مشتری د مبیع منع کونکې نه وی. او د مبیع بائع اړخ ته واپس کول هم ممتنع وی. نو په دې صورت کې مشری ته د نقصان عیب اخستلو اختیار وی. په دې وجه دې صورت کې مشتری ته د نقصان عیب اخستلو اختیار ورکړې شوې دې.

وَعَنْ هٰذَا قُلْنَا: او هم ددې ځائې نه موږ اووئیل إِنَّ مَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا فَقَطَعَهُ لِبَاسًا لِوَلَدِهِ الصَّغِيرِ چې یو کس کپړه واخستله. د خپل وړوکی بچی لپاره ئې جامې کټ کړلې وَخَاطَهُ او دا ئې اوګنډلې ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بیا په څه عیب باندې خبر شو لَا يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ نو مشتری د عیب نقصان نشی اخستلې.

حل اللغة:- ① ثوب، جامه، ② قطع، کټ کړل، ③ لباس، کوم څیزچه اغوستې شی، ④ خاط، اوګنډل

تشریح:- حاصل دا شو چه مشتری په کوم صورت کې ،،حابس للمبیع،، (یعنی مبیع منع کونکې) وی. په داسې صورت کې ده ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار نه وی. او په کوم صورت کې چې ،،حابس للمبیع،، نه وی. په داسې صورت کې ده ته د نقصان عیب اخستلو اختیار وی. ددې اصول په وجه موږ اووئیل. که یو کس کپړه [illegible]اخستله. او د خپل نابالغ بچی لباس جوړولو لپاره ئې دا کټ کړله. او وې ګنډله. بیا په څه عیب باندې خبرشو. نو ده [illegible]ه به د بائع نه د نقصان عیب اخستلو اختیار نه وی.

[illegible]وَكَانَ الْوَلَدُ كَبِيرًا او که بچې بالغ وی يَرْجِعُ نو اخستلې شی لِأَنَّ التَّمْلِيكَ حَصَلَ فِي الْأَوَّلِ قَبْلَ الْخِيَاطَةِ، ځکه چې په [illegible]مبی صورت کې د ګنډلو نه وړاندې د بچې مالك کول حاصل شو وَفِي الثَّانِي بَعْدَهَا بِالتَّسْلِيمِ إِلَيْهِ او په دوهم [illegible]ورت کې د ګنډلو نه روسته دده د اړخه په سپارلو سره (تملیك حاصلیږی)

[illegible] اللغة:- ① ولد، بچې، ② کبیر، لوئې، ③ الخیاطة، درزی توب، ④ التسلیم، سپارل

[illegible]:- او که بچې بالغ وو. نو مشتری ته به د نقصان عیب اخستل جائز وی. دلیل دا دې. چه مشتری کله د خپل [illegible]غ بچی د لباس جوړولو په ارادې سره کپړه کټ کړله. نو ګویا پلار بچی ته دا کپړه هبه کړله. او وې سپارله. او د [illegible]کیدلو په وجه ئې پخپله په دې باندې قبضه اوکړله. نو مشتری د هبه مع التسلیم په وجه حابس للمبیع [illegible]حابس للمبیع ته په نقصان عیب باندې د رجوع کاوه اختیار نه وی. په دې وجه به په دې صورت کې د نقصان [illegible] اجازت نه وی.

[illegible]لغ وی. نو صرف په کپړه کټ کاوه سره دې د کپړې نه مالك کیږی. بلکه د کپړې کټ کاوه نه روسته



چې کله دا اوګنډی. او ولد کبیر ته ئې اوسپاری. نو هله به ولد کبیر ددې مالك وی. ځکه چې پلار د خپل ولد کبیر د اړخه د قبضه اختیار نه لری. نو دا کپړه ولد کبیر اړخ ته هبه کول، او سپارل، د ګنډلو نه روسته اوموندې شو. حالانکه په ګنډلو سره ددې کپړې بائع اړخ ته واپس کول ممتنع شو. نو هرکله چې د هبه کاوه نه وړاندې کپړې واپس کول ممتنع شو. نو ولد کبیر اړخ ته په هبه مع التسلیم کولو سره مشتری حابس للمبیع نشو. او هرکله چې مشتری حابس للمبیع نشو. نو ده ته به د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار هم وی.

## د غلام آزادولو یا د مرګ نه روسته عیب ښکاره کیدل

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا فرمائی. او چاچه غلام واخستلو فَأَعْتَقَهُ ودا ئې آزاد کړو. أَوْ مَاتَ عِنْدَهُ یا غلام دده سره مړشو ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بیا دې په عیب باندې خبرشو رَجَعَ بِنُقْصَانِهِ نو مشتری د عیب نقصان واپس اخستلې شی.

حل اللغة:- ① اعتاق، آزادول، ② ینتهی، ختمیږی، ③ موت، مرګ، ④ الاطلاع، خبریدل

تشریح:- صورت د مسئلې دادې. که یو کس غلام واخستلو. او آزاد ئې کړلو. یا غلام مشتری په قبضه کې مړشو. بیا مشتری په هغه عیب خبرشو. کوم چې د بائع په قبضه کې پیدا شوې وو. نو په دې صورت کې مشتری د خپل بائع نه نقصان عیب اخستلې شی.

أَمَّا الْمَوْتُ هرچه مرګ دې فَلِأَنَّ الْمِلْكَ يَنْتَهِي بِهِ نو دا ځکه چې ددې په وجه ملك پوره کیږی. وَالِامْتِنَاعُ حُكْمِيٌّ لَا بِفِعْلِهِ او د واپسئ ممتنع کیدل غیراختیاری دی. دده په فعل سره نه دی.

تشریح:- د غلام د مرګ په صورت کې خو ځکه (نقصان عیب اخستلې شی) چې د مرګ په وجه ملك خپل انتهاء ته رسیږی. او چې کله شئ خپل انتهاء ته اورسی. نو متقرر او ثابتیږی. نو ګویا چې ملك موجود دې خو حکم د مرګ یعنی د غیر اختیاری امر په وجه غلام کوم چې بیع دې. دده واپس کول متعذر شو. او د واپسئ په ممتنع کیدلو کې دمشتری فعل ته هیڅ دخل نه وی. او هرکله چې د مبیع واپسی د یو غیراختیاری امر په وجه متعذر شی. نو د عیب قدیم په وجه مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی. په دې وجه مشتری سره د غلام د مرګ په صورت کې ده ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی.

وَأَمَّا الْإِعْتَاقُ او پاتې شو آزادول فَالْقِيَاسُ فِيهِ أَنْ لَا يَرْجِعَ نو په دې کې قیاس داوو. چه د عیب نقصان واپس وانخلی لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ بِفِعْلِهِ ځکه چې د واپسئ ممتنع کیدل دده په فعل سره دی فَصَارَ كَالْقَتْلِ نو آزادول د قتل پشان شو

تشریح:- او چه غلام واخلی. او آزاد ئې کړی. نو په دې صورت کې د قیاس تقاضا داده. چه مشتری ته د نقصان عیب اخستلو اختیار ورنکړې شی. ځکه چې په دې صورت کې غلام یعنی د مبیع واپسی متعذر کیدلو کې پخپله د مشتری فعل ته دخل دې. نو مشتری حابس للمبیع شو. او حابس للمبیع ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار نه وی. په دې وجه په دې صورت کې مشتری ته د نقصان عیب اختیار نه وی. او دا داسې شوه. لکه چې یو کس غلام واخلی. او قتل ئې کړی. بیا ئې په عیب باندې خبرشی. نو په دې صورت کې مشتری ته د نقصان عیب اخستلو اختیار نه وی. نو هم دغه ډول د آزادولو په صورت کې هم مشتری ته دنقصان عیب اخستلو اختیار نه وی.

وَفِي الِاسْتِحْسَانِ يَرْجِعُ او په استحسان کې به واپس کوی لِأَنَّ الْعِتْقَ إِنْهَاءُ الْمِلْكِ او په استحسان کې به واپس کوی ځکه چې عتق د ملك ختمول دی.

حل اللغة:- ① العتق، ازادیدل، ② انهاء، ختمول، ③ موقت، وختی طور، ④ صار، اوګرځیدو

تشریح:- اود استحسان تقاضا داده. چه مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی. هم داقول د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله دې. وجه د استحسان داده. چه آزادول ملکیت انتهاء ته رسول دی.

لِأَنَّ الْآدَمِيَّ مَا خُلِقَ فِي الْأَصْلِ مَحَلًّا لِلْمِلْكِ، ځکه چې سړې په اصل کې د ملك لپاره محل نه دې پیدا شوې وَإِنَّمَا يَثْبُتُ الْمِلْكُ فِيهِ مُوَقَّتًا إِلَى الْإِعْتَاقِ بلکه ملك په ده کې د اعتاق د وخت پورې ثابتیږی فَكَانَ إِنْهَاءً نو اعتاق ملك [illegible]

تشريح:- ماتن فرمائي چه بائع ته دا اختيار نشته چه ګنډلي شوې کپړه، يا رنګ شوې کپړه، يا غوړي ګډ شوي ستوان د مشتري نه واخلي. اوهغه ته ثمن واپس کړي. ځکه چې د مبيع په زياتوالى سره د بائع اړخ ته واپس کول ممتنع کيدل د بائع د حق په وجه نه دى. بلکه د شريعت د حق په وجه دى. ځکه چې مبيع سره ګډشوې زياتوالى د ربوا په معنى کې دې. اود ربوا حرمت د شريعت حق دې. نو هرکله چې مبيع سره ملاؤ شوې زياتوالې واپس کول د شريعت د حق په وجه ممنوع دې. نو بائع ته په زياتوالى سره د مبيع واپس اخستلو اختيار نشته.

فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِي بَعْدَمَا رَأَى الْعَيْبَ بيا که مشتري د عيب کتلو نه روسته دا خرڅ کړو رَجَعَ بِالنُّقْصَانِ نود عيب نقصان واپس اخستلي شي.

تشريح:- که مشتري د عيب کتلو نه روسته دا ګنډلي شوې کپړې، يا رنګ شوې کپړې، يا غوړي ملاؤ شوى ستوان دچا په لاس باندې خرڅ کړل نو بياهم مشتري ته د عيب نقصان واپس اخستلو اختيار شته.

لِأَنَّ الرَّدَّ مُمْتَنِعٌ أَصْلًا قَبْلَهُ ځکه چې د مشتري د خرڅولو نه وړاندې د مبيع واپس کول بالکل ممتنع وو فَلَا يَكُونُ بِالْبَيْعِ حَابِسًا لِلْمَبِيعِ نود خرڅولو په وجه به د مبيع منع کونکې نه وى.

حل اللغة:- ① الرد،واپس کيدل، ② اصلا،بيخى، ③ حابس،بندونکې، ④ ممتنع،منع

تشريح:- دليل دا دې چې په کپړو يا ستوانوکې د مشتري د ملك زياتوالى پيداکيدلو په وجه د مشتري د خرڅولو نه وړاندې ددې واپس کول ممتنع شوى دى. نو مشتري د خرڅولو په وجه د مبيع منع کونکې نه دې. او په کوم صورت کې چې مشتري د مبيع منع کونکې نه وى. اود مبيع بائع اړخ ته واپس کول هم ممتنع وى. نو په دې صورت کې مشري ته د نقصان عيب اخستلو اختيار وى. په دې وجه دې صورت کې مشتري ته د نقصان عيب اخستلو اختيار ورکړې شوې دې.

وَعَنْ هَذَا قُلْنَا: او هم ددې ځانې نه مونږ اوونيل إِنَّ مَنْ اشْتَرَى ثَوْبًا فَقَطَعَهُ لِبَاسًا لِوَلَدِهِ الصَّغِيرِ چې يو کس کپړه واخسته. د خپل وړوکى بچى لپاره ئې جامې کټ کړلې وَخَاطَهُ او دا ئې اوګنډلې ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بيا په څه عيب باندې خبر شو لَا يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ نو مشتري د عيب نقصان نشى اخستلې.

حل اللغة:- ① ثوب،جامه، ② قطع،کټ کړل، ③ لباس،کوم څيزچه اغوستې شى، ④ خاط،اوګنډل

تشريح:- حاصل دا شو چه مشتري په کوم صورت کې ،،حابس للمبيع،، (يعنى مبيع منع کونکې) وى. په داسې صورت کې ده ته د نقصان عيب واپس اخستلواختيار نه وى. او په کوم صورت کې چې ،،حابس للمبيع،، نه وى. په داسې صورت کې ده ته د نقصان عيب اخستلو اختيار وى. ددې اصول په وجه مونږ اوونيل. که يو کس کپړه واخسته. اود خپل نابالغ بچى لباس جوړولو لپاره ئې دا کټ کړله. او وې ګنډله. بيا په څه عيب باندې خبرشو. نوده ته به د بائع نه د نقصان عيب اخستلو اختيار نه وى.

وَلَوْ كَانَ الْوَلَدُ كَبِيرًا او که بچې بالغ وى يَرْجِعُ نو اخستلې شى لِأَنَّ التَّمْلِيكَ حَصَلَ فِي الْأَوَّلِ قَبْلَ الْخِيَاطَةِ، ځکه چې په رومبى صورت کې د ګنډلو نه وړاندې د بچې مالك کول حاصل شو وَفِي الثَّانِي بَعْدَهَا بِالتَّسْلِيمِ إِلَيْهِ او په دوهم صورت کې د ګنډلو نه روسته دده د اړخه په سپارلو سره (تمليك حاصليږى)

حل اللغة:- ① ولد،بچې، ② کبير،لوئې، ③ الخياطة،درزى توب، ④ التسليم،سپارل

تشريح:- او که بچې بالغ وو. نو مشتري ته به د نقصان عيب اخستل جائز وى. دليل دادې. چه مشتري کله د خپل نابالغ بچى د لباس جوړولو په ارادې سره کپړه کټ کړله. نو ګويا پلار بچى ته دا کپړه هبه کړله. او وې سپارله. اود ولى کيدلو په وجه ئې پخپله په دې باندې قبضه اوکړله. نو مشتري د هبه مع التسليم په وجه حابس للمبيع شو. اوحابس للمبيع ته په نقصان عيب باندې د رجوع کاوه اختيار نه وى. په دې وجه به په دې صورت کې د نقصان عيب اخستلو اجازت نه وى.

او ماشوم که بالغ وى. نو صرف په کپړه کټ کاوه سره دې د کپړې نه مالك کيږى. بلکه د کپړې کټ کاوه نه روسته



چې کله دا اوګنډى. او ولد کبير ته ئې اوسپارى. نو هله به ولد کبير ددې مالك وى. ځکه چې پلار د خپل ولد کبير د اړخه د قبضه اختيار نه لرى. نودا کپړه ولد کبير اړخ ته هبه کول. او سپارل. د ګنډلو نه روسته اوموندې شو. حالانکه په ګنډلو سره ددې کپړې بائع اړخ ته واپس کول ممتنع شو. نو هرکله چې د هبه کاوه نه وړاندې کپړه واپس کول ممتنع شو. نو ولدکبير اړخ ته په هبه مع التسليم کولو سره مشتري حابس للمبيع نشو. او هرکله چې مشتري حابس للمبيع نشو. نوده ته به د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار هم وى.

## د غلام آزادولو يا د مرګ نه روسته عيب ښکاره کيدل

قَالَ وَمَنْ اشْتَرَى عَبْدًا فرمائي. او چاچه غلام واخستلو فَأَعْتَقَهُ ودا ئې آزاد کړو. أَوْ مَاتَ عِنْدَهُ يا غلام دده سره مړشو ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بيا دې په عيب باندې خبرشو رَجَعَ بِنُقْصَانِهِ نو مشتري د عيب نقصان واپس اخستلې شي.

حل اللغة:- ① اعتاق،آزادول، ② ينتهي،ختميږى، ③ موت،مرګ، ④ الاطلاع،خبريدل

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. که يوکس غلام واخستلو. او آزاد ئې کړلو. يا غلام مشتري په قبضه کې مړشو. بيا مشتري په هغه عيب خبرشو. کوم چې د بائع په قبضه کې پيدا شوې وو. نو په دې صورت کې مشتري د خپل بائع نه نقصان عيب اخستلې شي.

أَمَّا الْمَوْتُ هرچه مرګ دې فَلِأَنَّ الْمِلْكَ يَنْتَهِي بِهِ نو دا ځکه چې ددې په وجه ملك پوره کيږى. وَالِامْتِنَاعُ حُكْمِيٌّ لَا بِفِعْلِهِ اود واپسئ ممتنع کيدل غيراختيارى دى. دده په فعل سره نه دى.

تشريح:- د غلام د مرګ په صورت کې خو ځکه (نقصان عيب اخستلې شي) چې دمرګ په وجه ملك خپل انتهاء ته رسيږى. او چې کله شئ خپل انتهاء ته اورسى. نو متقرر او ثابتيږى. نو ګويا چې ملك موجود دې. خو حکم د مرګ يعنى د غير اختيارى امر په وجه غلام کوم چې بيع دې. دده واپس کول متعذر شو. اود واپسئ په ممتنع کيدلو کې دمشتري فعل ته هيڅ دخل نه وى. او هرکله چې د مبيع واپسى د يو غيراختيارى امر په وجه متعذر شى. نود عيب قديم په وجه مشتري ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وى. په دې وجه مشتري سره د غلام د مرګ په صورت کې ده ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وى.

وَأَمَّا الْإِعْتَاقُ او پاتې شو آزادول فَالْقِيَاسُ فِيهِ أَنْ لَا يَرْجِعَ نو په دې کې قياس داوو. چه د عيب نقصان واپس وانخلى لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ بِفِعْلِهِ ځکه چې د واپسئ ممتنع کيدل دده په فعل سره دى فَصَارَ كَالْقَتْلِ نو آزادول د قتل پشان شو

تشريح:- اوچه غلام واخلى. او آزاد ئې کړى. نو په دې صورت کې د قياس تقاضا داده. چه مشتري ته د نقصان عيب اخستلو اختيار ورنکړې شى. ځکه چې په دې صورت کې غلام يعنى د مبيع واپسى متعذر کيدلو کې پخپله د مشتري فعل ته دخل دې. نو مشتري حابس للمبيع شو. اوحابس للمبيع ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار نه وى. په دې وجه په دې صورت کې مشتري ته د نقصان عيب اختيار نه وى. اودا داسې شوه. لکه چې يوکس غلام واخلى. او قتل ئې کړى. بيا ئې په عيب باندې خبرشى. نو په دې صورت کې مشتري ته د نقصان عيب اخستلو اختيار نه وى. نوهم دغه ډول د آزادولو په صورت کې هم مشتري ته دنقصان عيب اخستلو اختيار نه وى.

وَفِي الِاسْتِحْسَانِ يَرْجِعُ، اوپه استحسان کې به واپس کوى لِأَنَّ الْعِتْقَ إِنْهَاءُ الْمِلْكِ اوپه استحسان کې به واپس کوى ځکه چې عتق د ملك ختمول دى.

حل اللغة:- ① العتق،ازاديدل، ② انهاء،ختمول، ③ موقت،وختى طور، ④ صار،اوګرځيدو

تشريح:- اود استحسان تقاضا داده. چه مشتري ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وى. هم داقول د امام شافعى او امام احمد رحمه الله دې. وجه د استحسان داده. چه آزادول ملکيت انتهاء ته رسول دى.

لِأَنَّ الْآدَمِيَّ مَا خُلِقَ فِي الْأَصْلِ مَحَلًّا لِلْمِلْكِ، ځکه چې سړې په اصل کې د ملك لپاره محل نه دې پيداشوې وَإِنَّمَا يَثْبُتُ الْمِلْكُ فِيهِ مُوَقَّتًا إِلَى الْإِعْتَاقِ بلکه ملك په ده کې د اعتاق د وخت پورې ثابتيږى فَكَانَ إِنْهَاءً نو اعتاق ملك ...

شو. فَصَارَ کَالْمَوْتِ اودا د مرګ پشان شو.

تشریح:- دلیل دا دې چې د اصل خلقت په اعتبار سره سړي د ملك محل جوړولو لپاره نه دې پیدا شوې بلکه په غلام کې ملك د یو محدود وخت یعنی د آزادئ د وخته پورې ثابت وی. نو غلام آزادول ګویا خپل ملك انتهاء ته رسول دی. اودا د مرګ پشان شو

وَهٰذَا لِأَنَّ الشَّيْءَ يَتَقَرَّرُ بِانْتِهَائِهِ اودا په دې وجه چې شئ: (کله) خپلې انتهاء ته اورسیږی نو کاملیږی فَيُجْعَلُ كَأَنَّ الْمِلْكَ بَاقٍ نو داسې اوګڼلې شو. لکه چې ملك پاتې دې وَالرَّدُّ مُتَعَذِّرٌ او واپسی متعذر ده.

حل اللغة:- ① یتقرر، ثابتیږی، ② باق، باقی، ③ متعذر، ناجائز، ④ انتهاء، ختمیدل

تشریح:- او هر کله چې شئ: خپلې انتهاء ته اورسی. نو دا کامل کیږی. هم دا وجه ده. چه د آزاد شوی غلام ولاء د آزادونکی ملکیت وی. او ولاء د ملك د آثارو څخه دې. نو هم داسې به وئیلې شی. چه ملك پاتې دې. خود آزادولو په وجه د غلام واپس کول معذر شوی دی. او هر کله چې د مبیع بائع اړخ ته واپس کول متعذر شی. نو مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی. لکه څنګه چې د غلام د مرګ په صورت کې وی. په دې وجه د آزادولو په صورت کې هم مشتری ته د بائع نه د نقصان عیب اخستلو اختیار وی.

وَالتَّدْبِيرُ او مدبر کول وَالْاِسْتِيلَادُ بِمَنْزِلَتِهٖ او ام ولد جوړول په منزله د آزادولو دی لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ النَّقْلُ مَعَ بَقَاءِ الْمَحَلِّ بِالْأَمْرِ الْحُكْمِيِّ ځکه چې سره د بقاء د محل نه منتقل کول متعذر کیدل امر حکمی دې.

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه غلام اخستلو نه روسته دا مدبر جوړول، یا وینځه اخستلو نه روسته ام ولد جوړول، د آزادولو په حکم کې دی. یعنی په دې دواړو صورتونو کې هم مشتری ته په عیب باندې خبریدلو نه روسته په نقصان عیب باندې د رجوع کاوه اختیار وی. ځکه چې مدبر او ام ولد د شریعت په حکم سره د محل د بقاء باوجود د یو ملك نه بل ملك اړخ ته منتقل کول متعذر دی. او هر کله چې محل یعنی مبیع موجود وی. خودا بائع اړخ ته واپس کول متعذر وی. نو مشتری ته د رجوع بالنقصان حق وی. په دې وجه دې دواړو صورتونو کې مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی.

وَإِنْ أَعْتَقَهُ عَلٰى مَالٍ او که غلام ئې (په بدل د) مال باندې آزاد کړو لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ(¹) نو هیڅ واپس نشی ا خستلې لِأَنَّهُ حَبَسَ بَدَلَهُ ځکه چې ده د مبیع بدل خان سره ساتلې دې وَحَبْسُ الْبَدَلِ كَحَبْسِ الْمُبْدَلِ اود بدل خان سره ساتل د مبدل د خان سره ساتلو پشان دی.

حل اللغة:- ① اعتق، آزاد کړل، ② الحبس، بندیدل، ③ عوض، بدله، ④ رجوع، واپس کیدل

تشریح:- که مشتری د مال په عوض غلام آزاد کړلو او بیا په عیب باندې خبر شو. نو مشتری ته به د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار نه وی. ځکه چې مشتری د غلام بدل پخپل خان باندې بند کړې دې. او بدل منع کول داسې دی. لکه مبدل بندول. نو ګویا مشتری حابس للمبیع شو. اود حابس للمبیع کیدلو په صورت کې مشتری ته د رجوع بالنقصان حق نه وی. په دې وجه په دې صورت کې هم مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار نه وی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: اود ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې أَنَّهُ يَرْجِعُ چې رجوع کولای شی لِأَنَّهُ إِنْهَاءٌ لِلْمِلْكِ ځکه چې په مال باندې آزادول هم ملك پوره کول وی وَإِنْ كَانَ بِعِوَضٍ اګرچه په عوض سره وی.

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دادې. چه په دې صورت کې هم مشتری نقصان عیب واپس اخستلې شی. هم دا قول د امام ابویوسف رحمه الله هم دې. او هم ددې قائل امام شافعی او امام احمد رحمهما الله هم دی. ځکه چې غلام آزادول یا بالعوض وی. یا بلا عوض وی. دواړو صورتونو کې ملکیت انتهاء ته رسیږی. نو دا هم د

¹) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في البحر الرائق (٥٣\٦) ورالمحتار (٩٢\١٤، ٩٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٧\٢)-



مرګ پشان شو. اود غلام د مرګ په صورت کې مشتری ته د رجوع بالنقصان حق وی. په دې وجه د بالمال آزادولو په صورت کې هم د رجوع بالنقصان حق وی.

### د غلام قتلولو یا د خوراك خوړلو نه روسته په عیب خبریدل

فَإِنْ قَتَلَ الْمُشْتَرِي الْعَبْدَ نو که مشتری غلام قتل کړو أَوْ كَانَ طَعَامًا فَأَكَلَهُ یا خوراك وو. وې خوړلو لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ(¹) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز هیڅ هم واپس نشی اخستلې أَمَّا الْقَتْلُ فَالْمَذْكُورُ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ بهرحال د قتل په صورت کې چې کوم حکم مذکور دې هم دا ظاهر الروایة دې.

حل اللغة:- ① طعام، د خوراك څیز، ② ختف انفه، په خپل مرګ مړکیدل، ③ انهاء، ختمیدل، ④ العبد، غلام

تشریح:- په دې عبارت کې دوې (دوه) مسئلې ذکر دی. ① ړومبۍ مسئله داده. چه یوسړی یو غلام واخستلو. او قتل ئې کړلو. بیا په غلام کې په داسې عیب باندې خبر شو. کوم چې د بائع سره پیدا شوې وو. په دې مسئله کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د بائع نه دمشتری نقصان عیب واپس اخستلو اختیار نشته. هم دا ظاهر الروایة دې. اود حضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیز نقصان عیب واپس اخستلې شی. د بیع د بنا (بنیاد) مطابق امام محمد رحمه الله هم د ابویوسف رحمه الله سره دې. ② دویمه مسئله داده. که یوسړی دخوراك څه شئ واخستلو. او وې خوړلو. یا ئې کپړه واخستله. اود اغوستلو نه روسته ئې اوشلوله. بیا په عیب باندې خبر شو. نود صاحبینو رحمهما الله په نیز مشتری په نقصان عیب رجوع کولې شی. امام شافعی او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې. او هم دا دامام طحاوی رحمه الله مختار مذهب دې. اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز استحساناً رجوع نشی کولې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود ابویوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ يَرْجِعُ چې مشتری نقصان عیب واپس اخستلې شی لِأَنَّ قَتْلَ الْمَوْلٰى عَبْدَهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِهٖ حُكْمٌ دُنْيَاوِيٌّ ځکه چې د مولا د خپل غلام په قتلولو سره څه دنیاوی حکم نه متعلق کیږی فَصَارَ كَالْمَوْتِ حَتْفَ أَنْفِهٖ فَيَكُوْنُ إِنْهَاءً نو داسې شوه. لکه پخپل مرګ مړکیدل. نو (په دې سره) ملکیت پوره کیږی.

تشریح:- په ړومبۍ مسئله کې دامام ابویوسف رحمه الله دلیل ددې. چه د مولا خپل غلام قتلولو سره څه دنیوی حکم نه متعلق کیږی. نه په مولا باندې قصاص واجبیږی. او نه دیت واجبیږی. نو دا قتلول داسې شو. لکه د غلام پخپل طبعی مرګ باندې مړه کیدل. او وړاندې تیر شوی دی. چه د غلام په بیع کې طبعی مرګ باندې مړکیدلو په صورت کې مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی. نو په دې صورت کې هم مشتری د خپل بائع نه نقصان عیب واپس اخستلې شی. اود طبعی مرګ په صورت کې د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار په دې وجه وی. چه په طبعی مرګ مړکیدل په غلام کې د مولا ملك خپل انتهائی حد ته رسول دی. نو ګویا چې ملك موجود دې. خو بیع واپس کول متعذر دی. او په داسې صورت کې مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی. په دې وجه په ذکر شوی صورت کې هم مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی.

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ او د ظاهر الروایة وجه داده أَنَّ الْقَتْلَ لَا يُوْجَدُ چې قتل نه موجود کیږی إِلَّا مَضْمُوْنًا مګر په مضمون کیدلو سره وَإِنَّمَا يَسْقُطُ الضَّمَانُ هٰهُنَا بِاعْتِبَارِ الْمِلْكِ اود لته کې ضمان د ملك په وجه ساقطیږی فَيَصِيْرُ كَالْمُسْتَفِيْدِ بِهٖ عِوَضًا نو مولا د خپل ملك نه د عوض حاصلولو پشان شو.

حل اللغة:- ① یوجد، موجود یږی، ② یسقط، سقاطیږی، ③ المستفید، حاصل شوې، ④ عوض، بدله

تشریح:- د ظاهر الروایة یعنی د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چه څوك په ناحقه قتلول داسې نه دی. چه دده په قاتل باندې ضمان نه واجبیږی. د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. «لیس في الاسلام دم مفرج أي مبطل ومهدر» یعنی په اسلام کې د

¹) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير (١٦\٦) والعناية (١٥٠\٦) وردالمحتار (٩٤\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٨\٢)_

هیڅ چا وینه فضول نه ده.اوس پاتې شوه داخبره، چې د مولا خپل غلام قتلولو په صورت کې په مولا باندې ضمان د قتل ولې واجب نشو؟ نو ددې خواب دادې.چه په مولا باندې ضمان دده د مالك کیدلو په وجه ساقط شوې دی.لکه مثلاً که دې مولا د بل چا مملوك کړې وې.نو په هغه به د قصاص یا دیت ضمان بالیقین واجبیدلو.نو هرکله چې د مولا نه ضمان ساقط شو.نو ګویا چې مولا د خپل ملك عوض حاصل کړې دې.په دې طریقه که قتل عمد وو.نو د مولا خان بچ شو.او که قتل خطاء وی.نو د مولا لپاره دیت سالم پاتې شو.نودا داسې شوه.لکه چې مولا غلام واخستلو.اودا ئې خرڅ کړلو.اود غلام خرڅولو په صورت کې مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار اجازت نه وی.په دې وجه په دې صورت کې هم د نقصان عیب واپس اخستلو اجازت نه وی.

**بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ** په خلاف د آزادولو **لِأَنَّهُ لَا يُوجِبُ الضَّمَانَ لَا مُحَالَةَ** ځکه چې آزادول یقیناً د ضمان موجب نه دې **كَإِعْتَاقِ الْمُعْسِرِ عَبْدًا مُشْتَرَكًا** لکه د فقیر شریکوال مشترك غلام آزادول.

**حل اللغة:-** ① **الاعتاق**،آزادول، ② **یوجب**،واجبوی، ③ **المعسر**،فقیر، ④ **اعتاق**،آزادول

**تشریح:-** ددې په خلاف که مولا غلام واخستلو او آزاد ئې کړلو.او بیا په عیب باندې خبرشو.نو مولا یعنی مشتری به نقصان عیب باندې رجوع کولې شی.ځکه چې آزادول د هیڅ ضمان موجب نه دی.مثلاً یو غلام د دوې (دوه) سرو په مینځ کې مشترك دې.په دوی کې یوکس خپله برخه آزاده کړله.او اتفاقاً دې غریب هم دې.نو په دې آزادونکی به هیڅ ضمان واجب نه وی.بلکه غلام به د خپل پاتې نصف آزادولو لپاره سعی اومزدوری کوی.نود غلام اخستلو او آزادولوسره دا نه لازمیږی.چه مشتری پخپل ملك سره حقیقتاً یا حکماً څه عوض حاصل کړې دې.او هرکله چې عوض حاصلول لازم نشو.نودا د خرڅولو پشان هم نشو.بلکه د مرګ پشان شو.اود غلام د مرګ په صورت کې د رجوع بالنقصان حق وی.نود آزادولو په صورت کې هم مشتری ته د رجوع بالنقصان حق وی.

**وَأَمَّا الْأَكْلُ فَعَلَى الْخِلَافِ**، او پاتې شو خوراك.نودا مختلف فیه دې **فَعِنْدَهُمَا يَرْجِعُ** [1] د صاحبینو رحمهما الله په نیز به نقصان عیب واپس اخلی. **وَعِنْدَهُ لَا يَرْجِعُ اسْتِحْسَانًا** اود امام صاحب رحمه الله په نیز به استحساناً واپس نه اخلی. **وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا لَبِسَ الثَّوْبَ** اوهم په دې اختلاف چې کله ده کپړه واغوستله **حَتَّى تَخَرَّقَ** تردې چې اوشلیدله.

**حل اللغة:-** ① **الاکل**،خوراك، ② **لبس**،اغوستل، ③ **الثوب**،جامه، ④ **خرق**،شلیدل

**تشریح:-** اوکه کالی ئې واخستله اوهغه عیب داره شوه نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز به نقصان عیب واپس اخلی او دامام صاحب رحمه الله په نیز به استحساناً واپس نه اخلی.

**لَهُمَا أَنَّهُ صَنَعَ فِي الْمَبِيعِ** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه مشتری په بیع کې هغه فعل کړې دې **مَا يُقْصَدُ بِشِرَائِهِ** کوم چې ددې د اخستلو سره مقصود دې **وَيُعْتَادُ فِعْلُهُ فِيهِ** او په دې کې د داسې کاوه عادت جاری دې **فَأَشْبَهَ الْإِعْتَاقَ** په دې وجه دې د آزادونکی مشابه شو.

**حل اللغة:-** ① **صنع**،عمل کړې، ② **یعتاد**،عادت دې، ③ **اشبه**،مشابه شو، ④ **الاعتاق**،آزادول

**تشریح:-** په دویمه مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه مشتری بیع یعنی ماکول اوملبوس هم په هغه مقصدکې صرف کړی دی.دکوم مقصد لپاره چې دا اخستلې شوی دی.او په خلګ کې دا فعل یعنی د خوراك شئ خوړل،اود کپړو اغوستل معتاد(عام) هم دی.نو چې ماکول ئې اوخوړلو،او کپړې ئې واغوستلې.او وې شلولې.نو ګویا په دې ځیزونوکې د مشتری ملك کمال ته اورسیدلو.او هرکله چې په دې ځیزونوکې د مشتری ملك حد د کمال ته اورسیدلو.نودا ماکول خوړل،او کپړه اغوستل اوشلول، دغلام آزادولو پشان شو.اود غلام آزادولو په

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبین رحمهما الله کذا فی ردالمحتار(۹۳\۴) والبحر الرائق (۵۳\۶) وردالمحتار(۹۳\۴) وخلاصة الفتاوی (۹۶\۳) نقلاً عن القول الراجح(۳۰۱۲)_



صورت کې مشتری ته په نقصان عیب سره د رجوع کاوه اختیار وی.په دې وجه ذکرشوی صورت کې هم د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی.

**وَلَهُ** اود امام صاحب رحمه الله دلیل دادې **أَنَّهُ تَعَذَّرَ الرَّدُّ** چې بیع واپس کول متعذر شوی دی **بِفِعْلٍ مَضْمُونٍ مِنْهُ فِي الْمَبِيعِ** د مشتری د اړخه په بیع کې د داسې فعل کاوه په وجه،چه ددې ضمان واجبیږی **فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ وَالْقَتْلَ**.نودا د بیع خرڅولو اود قتلولو مشابه شوې دې.

**تشریح:-** دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه هرکله مشتری مبیع اوخوړلو،یا ئې واغوستلو،اووې شلولو.نود مبیع بائع اړخ ته واپس کول، مشتری د پاره په داسې فعل سره متعذر شو.چه ددې ضمان واجبیږی.که مشتری د بل چا مملوکه شئ خوړلې وو.یا ئې اغوستې وو.او شلولې ئې وو.نو په ده به د مالك لپاره یقیناً ضمان واجب وو.خو دلته کې مشتری پخپله مالك دې.په دې وجه دده نه ضمان ساقط شو.نو ګویا مشتری خپل ملك یعنی د مبیع عوض حاصل کړې دې.او هرکله چې مشتری عوض حاصلونکې شو.نودا صورت هم د مبیع خرڅولو.اود قتلولو مشابه شو.او په دې دواړه صورتونوکې نقصان عیب واپس نشی اخستلې.په دې وجه د مبیع په خوړلو.یاد اغوستلو اوشلولو په صورت کې هم د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار نه وی.

**وَلَا مُعْتَبَرَ بِكَوْنِهِ مَقْصُودًا** او ددې مقصود کیدل معتبر نه دی **أَلَا يُرَى أَنَّ الْبَيْعَ مِمَّا يُقْصَدُ بِالشِّرَاءِ** آیا نه ګورې،چه خرڅول په اخستلو سره مقصود وی **ثُمَّ هُوَ يَمْنَعُ الرُّجُوعَ** بیا خرڅول رجوع بالنقصان منع کوی.

**تشریح:-** په دې عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د دلیل ځواب ورکوی.حاصل د ځواب دادې.چه دا وئیل، چې د ماکول اخستلو نه خوراك،اود کپړې اخستلو نه اغوستل مقصود دی.ددې هیڅ اعتبارنشته.ځکه چې کله دا هم مقصود وې.خوکله د اخستلو نه مقصد د تجارت په طور خرڅول هم وی.اود مبیع خرڅولو په صورت کې نقصان عیب قطعاً واپس نشی اخستلې.

**فَإِنْ أَكَلَ بَعْضَ الطَّعَامِ** نوکه لږ شان ئې اوخوړلو **ثُمَّ عَلِمَ بِالْعَيْبِ** بیا په عیب باندې خبر شو **فَكَذَا الْجَوَابُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هم دا حکم دې.

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.که مشتری د مبیع نه څه اوخوړل.بیا په عیب باندې خبرشو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هم داحکم دې.چه مشتری نه ،،مابقی مبیع،، د عیب په وجه واپس کولې شی.او نه د خوړلی شوی اود مابقی مبیع نقصان عیب واپس اخستلې شی.

**لِأَنَّ الطَّعَامَ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ** ځکه چې طعام د شئ واحد پشان دې **فَصَارَ كَبَيْعِ الْبَعْضِ** نودا د بعض بیع خرڅولو پشان شوې دې.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې طعام په حکم کې د شئ واحد پشان دې.نود عیب په وجه څه واپس کول،او څه نه واپس کول ټیك نه دی.ګویا د مشتری د فعل په وجه د بیع واپس کول متعذر شو.او هرکله چې د مشتری په مبیع کې د تصرف کاوه په وجه د بیع واپس کول ناممکن شو.نو مشتری د نقصان عیب واپس اخستلو اختیارنشته.په دې وجه په دې صورت کې نقصان عیب واپس نشی اخستلې.اودا داسې ده.لکه چې مشتری بعض مبیع خرڅ کړلو.بیا دمبیع په عیب باندې خبرشو.نو مشتری ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار دې.یعنی څومره قدرې چې ئې خوړلې دې.د هغې نقصان عیب هم اخستلې شی.او کوم چې پاتې دې.د هغې نقصان عیب هم اخستلې شی.اود پاتې مقدار بائع اړخ ته واپس کول جائز نه دی.ځکه چې طعام د شئ واحد په حکم کې دی.نو په ټکړې کولوسره په دې کې عیب جدید پیدا شو.او عیب جدید یعنی دمشتری په قبضه کې چې کوم عیب پیدا شوې دې.د هغې په موجودګئ کې دعیب قدیم په وجه بائع اړخ ته مبیع نشی واپس کیدلې.په دې وجه د پاتې مبیع واپس کول صحیح نه دی.

**وَعِنْدَهُمَا** اود صاحبینو رحمهما الله نه روایت دې **أَنَّهُ يَرْجِعُ بِنُقْصَانِ الْعَيْبِ فِي الْكُلِّ** چې مشتری به نقصان عیب باندې په

ټولو کې رجوع کوي

تشریح:- اود صاحبینو رحمهما الله په نیز که مشتري پوره مبیع خوړلې وي.نوده ته به د رجوع بالنقصان حق وي.نو هرکله چې بعض مبیع ئې خوړلې دي.نو په درجه اولی به د رجوع بالنقصان حق وي.

وَعَنْهُمَا اود صاحبینو رحمهما الله نه روایت دې أَنَّهُ يَرُدُّ مَا بَقِيَ؛ چې ما بقي به واپس کوي لِأَنَّهُ لَا يَضُرُّهُ التَّبْعِيضُ خکه چې طعام ټکرې کول مضر نه دی.

تشریح:- او دوهم صورت دادې.چه مشتري دخیار عیب په وجه مابقي طعام واپس کړي.او څومره قدرې ئې چې خوړلې وي.د هغې نقصان عیب واخلي.خکه چې د خوراك ټکرې کول مضر نه دی.او هرکله چې ټکرې کول مضر نه دی.نود مشتري په قبضه کې عیب جدید هم پیدانشو.او هرکله چې عیب جدید پیدا نشو.نود عیب قدیم په وجه د مابقي طعام په واپس کاوه کې هیڅ باك نشته.او په خوړلی شوی مقدار کې چونکه د عیب په وجه دمشتري نقصان شوې دې.په دې وجه ددې په اندازه نقصان عیب واپس اخستلې شي.

**د میوو ماتولونه روسته خراب ختل**

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى بَيْضًا أَوْ بِطِّيخًا أَوْ قِثَّاءً أَوْ خِيَارًا أَوْ جَوْزًا فرمائي.که یوکس هګۍ، یا خربوزه، یا ختکې، یا بادرنګ، یا غوزان واخستل فَكَسَرَهُ فَوَجَدَهُ فَاسِدًا بیا ئې دا مات کړل.او خراب ئې اوموندل.

حل اللغة:- ① بیض،هګۍ، ② بطیخ،خربوزه، ③ قثاء،ختکې، ④ خیار،بادرنګ ⑤ جوز،غوز، ⑥ کسر،مات کړو، ⑦ وجد،اوموندو، ⑧ فاسد،خراب

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوکس هګۍ، یا خربوزه، یا تربوزه، یا ختکې، یا بادرنګ،یا بله څه میوه واخستله.بیا ددې په عیب باندې خبریدلو نه بغیر ئې مات کړلو.نو پوره خراب اوختلو.

فَإِنْ لَمْ يَنْتَفِعْ بِهِ نوکه دا قابل انتفاع نه وي رَجَعَ بِالثَّمَنِ كُلِّهِ نو مشتري دې پوره ثمن واپس واخلي. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ فَكَانَ الْبَيْعُ بَاطِلًا خکه چې دا دسره مال نه دې.په دې وجه بیع باطل شوه.

تشریح:- اوس که دا دومره خراب وي.چه بالکل د انتفاع قابل نه وي.نه انسان دا خوړلې شي.اونه د څاروو خوراك جوړیدلې شي.نو په داسې صورت کې به مشتري ته د پوره ثمن واپس اخستلو اختیار وي.خکه چې ددې په ماتولو سره پته اولګیدله.چه دا مال نه وو.خکه چې مال هغه وي.چه هغه فی الحال یا په راتلونکې زمانه کې د انتفاع قابل وي.او په ذکرشوی صورت کې مبیع د انتفاع قابل نه دې.نود مال نه کیدلو په وجه د بیع محل هم نشو.او هرلکه چې د بیع محل نه دې.نو بیع باطل شوه.او هرکله چې بیع باطل شوه.نو مشتري ته د خپل پوره ثمن واپس اخستلو اختیار دې.

وَلَا يُعْتَبَرُ فِي الْجَوْزِ صَلَاحُ قِشْرِهِ عَلَى مَا قِيلَ او ویلی شوی دی.چه په غوزانوکې د پوست ښه کیدل معتبر نه دی لِأَنَّ مَالِيَّتَهُ بِاعْتِبَارِ اللُّبِّ خکه چې د غوزانو مالیت د مغز (چکې) په اعتبارسره دې.

حل اللغة:- ① یعتبر،معتبر کیږي، ② صلاح،ټیکوالې، ③ قشر،پوست ، ④ اللب،مغز

تشریح:- دا عبارت د یو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه دغوزانو چکې خرابیدلو په وجه اګرچه دا غیرمال دی.خو ډیر خله په بعض مقاماتو کې ددې پوست قیمتي وي.دا د لرګی په ځائې د سوزیدلو پکارکې استعمالولې شي.نود غوزانو پوست د منتفع به کیدلو په وجه محل د بیع کیدلې شي.اوهرکله چې پوست د بیع محل کیدلې شي.نو په پوست کې ددې د برخې (حصې) د قیمت په عوض بیع ټیك کیدل پکار دی.اود چکې د برخې (حصې) قیمت د بائع نه واپس اخستل پکار دی.لکه څنګه چې د بعضومشائخو مذهب دې.

الجواب⑥علامه مرغیناني رحمه الله په ځواب کې فرمائي.چه په غوزانوکې د چکو ښه کیدل معتبر نه دی.خکه چې د شو کاوه نه وړاندې د غوزانو مالیت د چکې په اعتبارسره وي.د پوست په اعتبارسره نه وي.اود چکې خرابیدلو په



وجه دا غیرمنتفع به دې.نود محل بیع د نه موجود کیدلو په وجه بیع باطل شوې ده.اوهرکله چې بیع باطل شوه.نو مشتري خپل پوره ثمن واپس اخستلې شي.او پوست به بائع ته واپس کوي.

وَإِنْ كَانَ يَنْتَفِعُ بِهِ مَعَ فَسَادِهِ اوکه د خرابوالی باوجود قابل انتفاع وي لَمْ يَرُدَّهُ نودا نشي واپس کولې لِأَنَّ الْكَسْرَ عَيْبٌ حَادِثٌ خکه چې شو کول عیب جدید دې.

حل اللغة: ① ینتفع،نفع اخستې شي، ② الکسر،ماتیدل، ③ حادث،نوې پیدا شوې، ④ قدرالامکان،څومره چې کیداې شي

تشریح:- اوکه ذکرشوې مبیع د خرابیدلو باوجود د انتفاع قابل وي.نو مشتري ته به د مبیع واپس کولو،اود پوره ثمن واپس اخستلو اختیار نه وي.خو که بائع په دې راضي شي.(نو پوره ثمن واپس اخستل جائزدی) دلیل دادې.چه د مشتري غوزان وغیره ماتول عیب جدید دې.او مشتري سره په مبیع کې عیب جدید پیداکیدلو په صورت کې مشتري ته د عیب قدیم په وجه د مبیع واپس کاوه اختیار نه وي.په دې وجه مشتري مبیع خو نشي واپس کولې.

وَلَكِنَّهُ يَرْجِعُ بِنُقْصَانِ الْعَيْبِ خو مشتري به نقصان عیب واپس اخلي دَفْعًا لِلضَّرَرِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ چې حتی الامکان د طرفینو نه ضرر لرې شي.

تشریح:- البته د بائع نه نقصان عیب اخستلې شي.په داسې کولوسره د بائع او مشتري دواړو نه بقدرامکان ضرر لرې کیدلې شي.یعنی په دې صورت کې به نه د بائع څه ضرر وي.اونه به مشتري ته څه نقصان رسیږي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: او امام شافعي رحمه الله فرمائیلی دی يَرُدُّهُ چې واپس کولاې شي لِأَنَّ الْكَسْرَ بِتَسْلِيطِهِ خکه چې ماتول د بائع په قدرت ور کاوه سره شوی دی.

حل اللغة: ① تسلیط،قدرت ور کول ② ، ثوب،جامه، ③ القطع،کټ کیدل، ④ المشتري،اغوستونکې

تشریح:- دحضرت امام شافعي رحمه الله مذهب دادې.که د مبیع خرابیدلو باوجود قابل انتفاع وي.نو مشتري مبیع واپس کولې شي.او پوره ثمن واپس اخستلې شي.خکه چې غوزان وغیره مشتري د بائع په قدرت ور کاوه سره مات کړي دی.او په کار باندې قدرت ورکونکې د کارکونکې پشان وي.نو ګویا بائع پخپله دا میوې ماتې کړې دی.او هرکله چې د ماتولو فعل بائع اړخ ته منسوب دی.نو مشتري سره هیڅ عیب پیدا نشو.اوهرکله چې مشتري سره څه عیب جدید پیدا نشو.نو مشتري ته د خیارعیب لاندې د بیع واپس کاوه پوره پوره اختیار دې.

قُلْنَا التَّسْلِيطُ عَلَى الْكَسْرِ فِي مِلْكِ الْمُشْتَرِي مونږ وایو.چه په ماتولو باندې قدرت ورکول د مشتري په ملك کې شوی دی لَا فِي مِلْكِهِ د بائع په ملك کې نه دی شوی فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ ثَوْبًا فَقَطَعَهُ نوداسې شوه.لکه چې کپړه ئې واخستله.اودا ئې کټ کړله.

تشریح:- زمونږ د اړخه ځواب دادې.چه د میوې یعنی د بیع ماتولو قدرت مشتري ته بلاشبه د بائع د اړخه حاصل شوې دې.خود مشتري په ملك کې د ماتولو قدرت ورکړې دې.پخپل ملك کې ئې د ماتولو قدرت نه دې ورکړې.خکه چې دعقد بیع په وجه د بائع ملك پاتې نشو.نو هرکله چې د بائع ملك پاتې نشو.نود ماتولو قدرت ورکول به هم د مشتري په ملك کې وي.د بائع په ملك کې به نه وي.اود مشتري په ملك کې مشتري ته د ماتولو قدرت ورکول بالکل لغوه دی.خکه چې بائع ته په مشتري باندې د ولایت هیڅ حق حاصل نه دې.نودا داسې شوه.لکه کپړه اخستلو نه روسته ئې دا کټ کړله.بیا ئې دا کپړه عیب داره اوموندله.نومشتري ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیارشته.اګرچه د کپړې کټ کاوه قدرت د بائع د اړخه حاصل شوې دې.دغه ډول په ذکرشوې مسئله کې هم مشتري ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار دې.اود ماتې شوې میوې واپس کول،اود پوره ثمن واپس اخستلو اختیار به نه وي.

وَلَوْ وَجَدَ الْبَعْضَ فَاسِدًا د بائع په ملك کې نه دی شوی وَهُوَ قَلِيلٌ حالانکه دا کم دی جَازَ الْبَيْعُ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً بیع

جائز ده.

تشريح:- او که څه غوزان خراب اوختل.نوکه ددي مقدار کم وی نو په دې صورت کي استحسانا بيع جائز ده.او مشتري ته به بائع سره د هيڅ قسمه مخاصمه (جګړه) کاوه حق نه وی.

لِأَنَّهُ لَا يَخْلُو عَنْ قَلِيلٍ فَاسِدٍ ځکه چې دا د قليل (لږ) خرابوالی نه خالی نه وی وَالْقَلِيلُ مَا لَا يَخْلُو عَنْهُ الْجَوْزُ عَادَةً او قليل هغه دي چه په عامه توګه (عام طور) ددې نه غوزان خالی نه وی كَالْوَاحِدِ وَالِاثْنَيْنِ فِي الْمِائَةِ لکه په سلوکي يو يا دوه.

تشريح:- دليل دا دې چې د کم مقدار نه په عامه توګه (عام طور) غوزان خالی نه وی.لکه په سلوکي د يو يا دوې (دوه) غوزانو خراب ختل.

وَإِنْ كَانَ الْفَاسِدُ كَثِيرًا او که خراب زيات وی لَا يَجُوزُ وَيَرْجِعُ بِكُلِّ الثَّمَنِ نو بيع جائز نه ده او پوره ثمن دې واپس واخلي.

تشريح:- او که د خراب شوی مقدار کثير وی.نو بيع به جائز نه وی.نه په خراب شووکي .او نه په غير خراب شووکي .او مشتري به پوره ثمن د بائع نه واپس اخلي.ځکه چې خراب غوزان د قيمت نه کيدلو په وجه غيرمال دې.او کوم چې ښه دی.خراب نه دی.هغه مال دی.

لِأَنَّهُ جَمَعَ بَيْنَ الْمَالِ وَغَيْرِهِ ځکه چې ده مال او غيرمال جمع کړي دي فَصَارَ كَالْجَمْعِ بَيْنَ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ نو داسې شوه . لکه آزاد او خپل غلام جمع کول.

تشريح:- ګويا چې بائع مال اوغيرمال په عقد واحد کي جمع کړی دی.او مال او غيرمال په عقد واحد کي جمع کول مفسد د بيع دی.په دې وجه په دې صورت کي په پوره مبيع کي بيع فاسديږی.لکه چې آزاد اوغلام په عقدواحد کي [illegible] بيع دی.

**د دوهم مشتري غلام خرڅولو نه روسته د عيب په وجه ردکول**

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا فرمائي.چه يوکس غلام خرڅ کړو فَبَاعَهُ الْمُشْتَرِي بيا دا مشتري خرڅ کړو ثُمَّ رُدَّ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ بيا مشتري ارخ ته د عيب په وجه واپس کړې شو. فَإِنْ قَبِلَ بِقَضَاءِ الْقَاضِي نوکه مشتري اول دا د قاضي په حکم سره قبول کړې دي بِإِقْرَارٍ أَوْ بَيِّنَةٍ (که) په اقرار سره او که په ګواهئ سره أَوْ بِإِبَاءِ يَمِينٍ لَهُ ياد قسم نه په انکار سره أَنْ يَرُدَّهُ عَلَى بَائِعِهِ، نو مشتري اول دا پخپل بائع باندې واپس کولې شي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوکس خپل غلام خرڅ کړلو.بيا مشتري په غلام باندې قبضه اوکړله.او په بل يوکس ئې خرڅ کړلو.بيا دوهم مشتري په غلام کي د موجودعيب په وجه دا مشتري اول ته واپس کړلو.خومشتري اول دا د قاضي په حکم قبول کړلو.د قاضي دفيصلې درې بنياده کيدلې شي.① يودا چې دوهم مشتري دعوه اوکړله.چه مشتري اوله په مبيع کي د عيب اقرار کړې دې.نومشتري اول دعيب اقرار کاوه نه انکار اوکړلو.نو دوهم مشتري د مدعی کيدلو په حيثيت سره د مشتري اول د عيب په اقرار باندې ګواهان پيش کړل.نود ګواهانو په ګواهئ سره به د مشتري اول د عيب اقرار ثابت شي.اوهر کله چې د عيب موجود کيدلو نه د مشتري اقرار کول ثابت شو.نو ددې اقرار په بنا (بنياد) باندې قاضي مشتري اول ارخ ته مبيع غلام واپس کولوحکم اوکړلو.د مصنف د اقرار د قول نه هم دا مراد دی.② دوهم بنا (بنياد) دادې.چه دوهم مشتري دعوه کوی.چه کوم غلام اخستې شوې دې.په دې کي د مشتري اول سره عيب وو.او مشتري اول دسره د عيب انکار کوی.نو دوهم مشتري د قاضي په عدالت کي د عيب په ثبوت باندې ګواهان پيش کړل.قاضي ددې عيب په وجه مشتري اول ارخ ته د غلام واپس کاوه حکم اوکړلو.د مصنف د قول ﴿وبينه﴾ نه هم دا مراد دی.③ او دريم بنا (بنياد) دادې.چه په ذکرشوی صورت کي دوهم مشتري د عيب په ثبوت باندې د ګواهانو پيش کاوه نه عاجز شو.قاضي د شريعت مطابق د مشتري اول نه د قسم مطالبه اوکړله.مشتري اول د قسم خوړلو نه انکار اوکړلو.نود مشتري اول د قسم نه د انکار



کاوه په وجه عيب ثابت اومنلو.اومشتري اول ارخ ته ئې د غلام واپس کولوحکم اوکړلو.د مصنف د قول ﴿او بإباء يمين﴾ نه هم دا مراد دی.بهرحال دې درې واړو صورتونوکي چې په کوم صورت کي هم مشتري اول ارخ ته غلام واپس کړې شو.مشتري اول ته دا حق دې.چه دې دا غلام خپل بائع ارخ ته واپس ګړی.يعنی د کوم کس نه چې مشتري اول اخستې دې.مشتري اول ئې هم هغه ته واپس کړی.

لِأَنَّهُ فَسْخٌ مِنَ الْأَصْلِ ځکه چې دا د اصل بيع فسخ ده فَجَعَلَ الْبَيْعَ نو بيع ثانی داسې اوګرځولې شوه كَأَنْ لَمْ يَكُنْ. ګويا دسره واقع شوې هم نه وه.

تشريح:- دليل دادې.چه د دوهم مشتري د قاضي په حکم مشتري اول ارخ ته غلام واپس کول،دا د بيع ثانی فسخ کول دی.نو بيع ثانی ګويا چې واقع شوې هم نه ده.او بيع اول موجود ده.نو مشتري اول ته به د عيب په وجه د غلام واپس کاوه اختيار وی.

غَايَةُ الْأَمْرِ زيات نه زيات دا ونيلې شی أَنَّهُ أَنْكَرَ قِيَامَ الْعَيْبِ چې ده د عيب موجود کيدلو انکار کړې دې. لَكِنَّهُ صَارَ مُكَذَّبًا شَرْعًا بِالْقَضَاءِ خو شريعت په حکم د قضاء دا دروغ اوګرځول.

حل اللغة: ① غاية الامر،آخری خبره دا ده، ② انكر،انکار اوکړو، ③ مكذب،دروغژن کړې شوې

تشريح:- دا عبارت د يو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه هرکله مشتري اول د عيب نه انکار اوکړلو . نزده له به خپل بائع ارخ ته ددې عيب په وجه د مبيع واپس کاوه اختيار څنګه وی.چه هغه انکار کړې دې.ځکه چه [illegible] کي دمشتري اول په کلام کي تناقض واقع شوې دې؟ ددې ځواب دادې.چه مشتري اول د عيب انکار يقينا چې کړې وو.خو شريعت د قاضي په حکم دا دروغ ګرځولې وو.نود شريعت د تکذيب په وجه دده انکار کالعدم شو.او هرکله چې انکار کالعدم شو.نود مشتري اول په کلام کي هيڅ تناقض پاته نشو.اوهرکله چې د مشتري اول په کلام کي تناقض پاته نشو.نود ثابت شوی عيب په وجه به مشتري اول ته هم، مبيع خپل بائع ارخ ته د واپس کاوه پوره پوره اختيار وی.

وَمَعْنَى الْقَضَاءِ بِالْإِقْرَارِ او د قضاء بالاقرار معنی داده. أَنَّهُ أَنْكَرَ الْإِقْرَارَ چې مشتري اول د عيب اقرار کاوه نه انکار اوکړو. فَأُثْبِتَ بِالْبَيِّنَةِ نود ګواهئ په ذريعه دا ثابت کړې شو.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د قضاء بالاقرار معنی داده.چه مشتري اول د عيب د اقرار نه انکار اوکړلو.او بيا دا اقرار د ګواهئ په ذريع ثابت کړې شو.دا مطلب هيڅ چرې نه دې.چه مشتري اول دعيب اقرار کړې دی.ددې پوره تفصيل د ړومبی بنا (بنياد) لاندې خادم په تفصيل سره ذکر کړې دې.

وَهَذَا بِخِلَافِ او دا ددې خلاف دې الْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ إِذَا رُدَّ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ بِالْبَيِّنَةِ چې کله وکيل بالبيع باندې د ګواهئ په ذريعه عيب ثابتولو سره مبيع واپس کړې شو حَيْثُ يَكُونُ رَدًّا عَلَى الْمُوَكِّلِ نودا واپسی به په موکل وی.

تشريح:- دا هم د يو سوال ځواب دې.سوال دادې.که وکيل بالبيع څه شئ خرڅ کړلو.بيا مشتري د ګواهانو په ذريعه په مبيع کي عيب ثابت کړلو.او مبيع ئې وکيل ارخ ته واپس کړلو.نودا وکيل ارخ ته واپس کول، موکل ارخ ته واپس کول دی.موکل ارخ ته واپس کاوه لپاره وکيل ته جلا دڅه اقدام ارتيا نشته.

ددې په خلاف د متن په مسئله کي د مشتري ثانی مشتري اول ارخ ته د مبيع واپس کول، دمشتري اول بائع ارخ ته واپس کول نه دی.بلکه که مشتري اول اوغواړی.نو عيب داره مبيع خپل بائع ارخ ته واپس کولې شی.ګني نشی واپس کولې.يعنی د مشتري ثانی په واپس کولوسره د مشتري اول بائع ارخ ته واپس کول نه لازميږی.حالانکه وکيل او مشتري اول د دواړو حال برابر دې.نو لکه څنګه چې وکيل ارخ ته د مبيع په واپس کاوه سره موکل ارخ ته واپس کيږی.دغه ډول مشتري اول ارخ ته د مبيع واپس کولوسره دده بائع ارخ ته واپس کيدل پکار دی.

لِأَنَّ الْبَيْعَ هُنَاكَ وَاحِدٌ وَالْمَوْجُودُ هَاهُنَا بَيْعَانِ، ځکه چې د وکيل په صورت کي يو بيع ده.او دلته کي دوې (دوه) بيع دی

فَيَلْزَمُهُ الثَّانِي وَالْأَوَّلُ لَا يَنْفَسِخُ نود دوهم بيع فسخ كاوه نه ورانډي به بيع نه فسخ كيږي.

تشريح:- په دې عبارت سره د سابقه سوال خواب كوي چې د توكيل په مسئله كې بيع فقط يوه ده.په دې وجه وكيل ارخ ته مبيع واپس كول په حقيقت كې موكل ارخ ته واپس كول دي.اود متن په مسئله كې بيع دوې (دوه) دي.يود بائع اود مشتري اول په مينځ كې .او دوهم د مشتري اول اود مشتري ثاني په مينځ كې .او چونكه د دوهم بيع په فسخ كولوسره ړومبۍ بيع نه فسخ كيږي.په دې وجه مشتري اول ارخ ته د بيع په واپس كاوه سره دده بائع ارخ ته نه واپس كيږي.

## د قاضي د قضاء نه بغير ردكول

وَإِنْ قَبِلَ بِغَيْرِ قَضَاءِ الْقَاضِي خكه چې د وكيل په صورت كې يو بيع ده.او دلته كې دوې (دوه) بيع دي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ نو مشتري اول ته دا اختيار نشته.چه دې دا خپل بائع ته واپس كړي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه يوسړي په چا باندې خپل غلام خرڅ كړلو.بيا مشتري په غلام باندې قبضه اوكړله.اود بل په لاس ئې خرڅ كړلو.مشتري ثاني په دې غلام باندې د قبضه كاوه نه روسته د څه عيب په وجه غلام مشتري اول ارخ ته واپس كړلو.مشتري اول د قاضي د قضاء نه بغير صرف پخپل مينځ كې په رضامندۍ سره دا عيب داره غلام واپس واخستلو.نواوس كه مشتري اول خپل بائع ارخ ته دا معيب غلام واپس كول اوغواړي.نوده ته به دا اختيار حاصل نه وي.يعنى مشتري اول دا معيب غلام خپل بائع ارخ ته نشي واپس كولې

لِأَنَّهُ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ خكه چې د دريم په حق كې دا بيع جديد ده وَإِنْ كَانَ فَسْخًا فِي حَقِّهِمَا اګرچه ددې دواړو په حق كې دا فسخ ده وَالْأَوَّلُ ثَالِثُهُمَا او ړومبي ددې دواړو دريم دې.

حل اللغة: ① جديد،نوې ،② ثالث،دريمګړی،③ يخاصم،جګړې كوی،④ باع،خرڅ كړې وو

تشريح:- دليل دادې.چه د مشتري ثاني مشتري اول ارخ ته غلام واپس كول،اګرچه ددې دواړو په حق كې بيع فسخ كول دي.خود دريم په حق كې دا بيع جديد ده.او بائع اول ددې دواړو دريم دې.نو دده په حق كې دا بيع جديد شوه.نو ګويا مشتري اول غلام واخستلو.يو تصرف ئې پخپله اوكړلو.چه دا ئې خرڅ كړلو.او بل تصرف مشتري ثاني اوكړلو.چه دا غلام ئې د قاضي د قضاء نه بغير مشتري اول ارخ ته قبول كړې دې.په دې وجه په عيب باندې د مشتري اول رضامندي هم ښكاره شوې ده.او هركله چې مشتري اول د غلام په عيب باندې راضي شو.نو اوس ده ته خپل بائع ارخ ته د واپس كاوه حق نشته.اونه به د نقصان واپس اخستلو اختيار وي.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او په جامع صغير كې دي وَإِنْ رُدَّ عَلَيْهِ بِإِقْرَارِهِ بِغَيْرِ قَضَاءٍ بِعَيْبٍ كه مبيع مشتري اول ته دده داقرار كاوه نه بغير د قاضي په حكم د داسې عيب په وجه واپس كړې شو لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ.چه ددې مثل نه پيدا كيږي لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَ الَّذِي بَاعَهُ نو مشتري اول ته دې سړي سره د مخاصمه كاوه اختيار نشته.چا چې مشتري اول باندې خرڅ كړې دې.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرماني.په جامع صغير كې ذكردي.چه مشتري ثاني كه مشتري اول ته د قاضي د قضاء نه بغير غلام واپس كړلو.اودا واپسي مشتري اول ته د قاضي د قضاء نه بغير اوشوله.اودا واپسي د مشتري اول د داسې عيب په اقرار سره اوشوله.چه ددې مثل په دې موده كې نه پيدا كيږي.لكه په لاس يا خپه كې قچه ګوته پيدا كيدل،نو مشتري اول ته به خپل بائع سره د مخاصمې حق نه وي.يعنى غلام ته د واپس كاوه ياد نقصان عيب اخستلو اختيار نه وي.

وَهَذَا يَتَبَيَّنُ او ددې مسئلې نه ښكاره شوه أَنَّ الْجَوَابَ فِيمَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ چې حكم په هغه عيب كې چې ددې مثل پيدا كيږي وَفِيمَا لَا يَحْدُثُ سَوَاءٌ او په هغه عيب كې چې ددې مثل نه پيدا كيږي. برابر دې.



حل اللغة: ① يتبين،ښكاره كوی② ،الجواب،حكم،③ يحدث،پيدا كيږي،④ سواء،برابر

تشريح:- ددې مسئلې نه دا ښكاره شوه.كه عيب داسې وي.چه ددې مثل پيدا كيدلې شي.لكه تنكۍ وغيره، يا داسې وي.چه ددې مثل نشي پيدا كيدلې.لكه زياتي ګوته وغيره.نو په دواړو صورتونو كې حكم برابر دې.يعنى كه مشتري اول پخپل اقرار سره غلام واپس واخستلو.نو په هيڅ صورت كې به هم ده ته د بائع نه دنقصان عيب اخستلو يا غلام واپس كاوه اختيار نه وي.په دې دواړو صورتونو كې د حكم يوشان والي وجه داده.چه كله په غلام كې عيب داسې وي.چه ددې مثل په دې موده كې نشي پيدا كيدلې.نو په دې صورت كې ددې يقين باوجود، چې دا عيب بائع اول سره پيدا شوې وو.مشتري اول ته د غلام واپس كاوه اختيار نشته.نو په كوم صورت كې چې ددې په مثل عيب په دې موده كې پيدا كيدلې شي.په درجه اولى سره مشتري اول لپاره دا غلام خپل بائع ارخ ته د واپس كاوه حق نه وي.خكه چې په دې صورت كې دا احتمال هم شته.چه دا عيب د بائع اول سره نه وي.بلكه د مشتري اول سره پيدا شوې وي.نو ددې عيب په وجه مشتري اول خپل بائع ارخ ته د غلام واپس كولو، يا د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار به څنګه وي؟

وَفِي بَعْضِ رِوَايَاتِ الْبُيُوعِ: اود مبسوط د ،،كتاب البيوع،، په بعض رواياتو كې دى إِنْ كَانَ فِيمَا لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ په هغه عيب كې چې ددې مثل نه پيدا كيږي يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ مشتري اول به د خپل بائع نه نقصان عيب واپس اخلى لِلتَّيَقُّنِ بِقِيَامِ الْعَيْبِ عِنْدَ الْبَائِعِ الْأَوَّلِ خكه چې بائع اول سره د عيب موجود كيدلو يقين دې.

تشريح:- اود مبسوط د ،،كتاب البيوع،، په بعضو رواياتو كې ذكر دى.كه عيب داسې وي.چه ددې مثل په دې موده كې نشي پيدا كيدلې.نو په دې صورت كې مشتري اول ته د خپل بائع نه د نقصان عيب اخستلو اختيار شته.خكه چې په دې صورت كې ددې خبرې يقين دې.چه دا عيب بائع اول سره موجود وو.اوكوم عيب چې د بائع اول سره موجود وي.د هغې په وجه نقصان عيب واپس اخستلې شي.د قدوري عبارت په دې اره كې مطلق دى.په دې سره نه د جامع صغير تائيد كيږي.او نه د مبسوط تائيد كيږي.خو صحيح د جامع صغير روايت دې.خكه چې ددې خبرې اګرچه يقين دې.چه دا عيب بائع اول سره موجود وو.خو چې كله مشتري اول دا خرڅ كړلو.اود خپل ملك نه ئې اوښكلو.او واپس كول متعذرشو.نونقصان عيب څنګه اخستلې شي؟

## په غلام د قبضه كولونه روسته د عيب دعوه

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا فرماني.اوكوم كس چې غلام واخستلو فَقَبَضَهُ نو په دې ئې قبضه اوكړله فَادَّعَى عَيْبًا بيائې په دې كې د عيب دعوه اوكړله لَمْ يُجْبَرْ عَلَى دَفْعِ الثَّمَنِ نودې به په ثمن ور كاوه باندې نشي مجبوره كولې حَتَّى يَحْلِفَ الْبَائِعُ تردې چې بائع قسم واخلى أَوْ يُقِيمَ الْمُشْتَرِي بَيِّنَةً يا مشتري ګواه قائم كړي.

حل اللغة: ① يجبر،مجبوره كولې شي،② الدفع،وركول،③ الثمن،قيمت،④ يقيم،قائموی

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه يو كس غلام واخستلو.او په ده ئې قبضه اوكړله.بيا مشتري په دې كې د عيب دعوه اوكړله.نو قاضي به مشتري په ثمن ادا كاوه باندې نه مجبوره كوي.بلكه يا به مشتري ګواه پيش كوي.يا به بائع په عيب نه كيدلو باندې قسم خوري.كه مشتري په عيب موجود كيدلو باندې ګواهان پيش كړل نو مشتري ته به د مبيع واپس كاوه اختيار وي.كه ده ګواهان پيش نكړل.نود بائع څخه به قسم اخستلې شي.نوكه بائع د عيب په نه موجود كيدلو باندې قسم اوخوړلو.نو په دې صورت كې به مشتري په ثمن ادا كاوه باندې مجبور كولې شي.

لِأَنَّهُ أَنْكَرَ وُجُوبَ دَفْعِ الثَّمَنِ خكه چې كله مشتري د عيب دعوه اوكړله نو پخپل خان باندې ئې د ثمن ادا كاوه د وجوب نه انكار اوكړو وَدَفْعُ الثَّمَنِ أَوَّلًا حالانكه (په مشتري باندې) ړومبې ثمن اداكول حَيْثُ أَنْكَرَ تَعَيُّنَ حَقِّهِ بِدَعْوَى الْعَيْبِ لِيَتَعَيَّنَ حَقُّهُ بِإِزَاءِ تَعَيُّنِ الْمَبِيعِ هم په دې وجه (واجب شوی وو) چې د بائع حق مبيع متعين كيدلو په مقابله كې متعين شي.

حل اللغة: ① انكر،انكار اوكړو،② تعيين،معين كول،③ دفع،وركول،④ صون،حفاظت

**تشريح:-** ددې دليل دادې چه كله مشترى د عيب دعوه اوكړله.نود خپل حق متعين كاوه نه ئې انكار اوكړلو.نوبخپل خان ئې د ثمن واجب كاوه نه انكار اوكړلو.خكه چې كله په مبيع كې عيب شته.نو مبيع د واپس كاوه لائق دې.او هركله چې مبيع د واپس كاوه لائق دې.نود مشترى حق په دې كې دسره متعين هم نشو.او هركله چې د مشترى حق متعين نشو.نو په ده به د ثمن اداكول هم واجب نه وى.حالانكه مخكې په مشترى باندې ثمن اداكول په دې وجه واجب شوى وو.چه د بائع حق هم په ثمن كې متعين شى.لكه څنگه چې د مشترى حق په مبيع كې متعين شوې دې.اود عيب دعوه كاوه په وجه چونكه په مبيع كې دده حق متعين نشو په دې وجه په ده باندې به هم د مخكې نه د ثمن اداكول واجب نه وى.

| **وَلِأَنَّهُ لَوْ قَضٰى بِالدَّفْعِ** اوخكه كه قاضى د ثمن ادا كاوه فيصله اوكړله **فَلَعَلَّهُ يَظْهَرُ الْعَيْبُ** نو ممكن ده.چه عيب ښكاره شى **فَيَنْتَقِضُ الْقَضَاءُ** نو فيصله به ماته شى **فَلَا يَقْضِي بِهِ صَوْنًا لِقَضَائِهِ** نود خپل حكم د ساتنه لپاره به قاضى حكم نه كوى. |
|---|

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.كه قاضى په مشترى باندې د ثمن ور كاوه حكم اوكړى.او بيا عيب ښكاره شى.نود قاضى فيصله به ماته شى.په دې وجه د خپل حكم د ساتنه په خاطر به قاضى د ثمن ادا كاوه حكم نه كوى.او هركله چې قاضى حكم اونكړى.نو مشترى په ثمن ادا كاوه باندې مجبور كيدلې هم نشى.

## كه د مشترى گواهان موجود نه وى؟

| **فَإِنْ قَالَ الْمُشْتَرِي** بيا كه مشترى اووئيل **شُهُودِي بِالشَّامِ** چې زما گواهان په ملك شام كې دى **اُسْتُحْلِفَ الْبَائِعُ** نود بائع څخه به قسم اخستلې شى **وَدَفَعَ الثَّمَنَ** و ثمن به ور كولاى شى **يَعْنِي إِذَا حَلَفَ** يعنى كله چې بائع قسم اوخوړلو **وَلَا يَنْتَظِرُ حُضُورَ الشُّهُودِ** اود گواهانو حاضرولو انتظار به نشى كولې. |
|---|

**حل اللغة:** ① **استحلف**،قسم به وركړې شى، ② **الدفع**،وركول، ③ **حضور**،حاضريدل، ④ **شهود**،جمع د شاهد ،گواه

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې چه كله مشترى غلام واخستلو.او په ده باندې د قبضه كاوه نه روسته ئې په ده كې د عيب دعوه اوكړله.نو بائع د عيب په ثبوت باندې دگواهانو مطالبه اوكړله.نومشترى اووئيل.چه زما گواهان د درې ورځو په مسافه دى.په دې وجه ماته څه مهلت راكړئ.چه زه دوى پيش كړم.يا د هغه ځائې د قاضى د اړخه حكمى كتاب پيش كړم.يعنى په كوم ښاركې چې گواهان موجود دى.دهغه ښار د قاضى په عدالت كې هغوى گواهى وركړى.بيا د هغه ځائې قاضى تحرير آوليگى.او دې قاضى له ئې راؤليگى.د كوم قاضى په عدالت كې چې دا مقدمه پيل ده.نود مشترى دا عذر به نشى قبلولې.اوده ته به هيڅ مهلت نشى وركولې.بلكه قاضى به په عيب نه كيدلوباندې د بائع نه قسم اخلى.نو كه بائع قسم اوخوړلو.نود مشترى نه بلاتاخير ثمن اخستلې شى.اود گواهانو حاضرولو يا د كتاب حكمى راوړلو به هيڅ انتظارنشى كولې.

| **لِأَنَّ فِي الْاِنْتِظَارِ ضَرَرًا بِالْبَائِعِ** ،خكه چې په انتظار كې د بائع ضرر دې **وَلَيْسَ فِي الدَّفْعِ كَثِيرُ ضَرَرٍ بِهِ** ،اود مشترى په ثمن ور كاوه كې زيات ضرر نشته **لِأَنَّهُ عَلٰى حُجَّتِهِ** ،خكه چې دې پخپل حجت باندې پاته دې. |
|---|

**حل اللغة:** ① **كثير**،زيات، ② **حجة**،دليل، ③ **النكول**،انكار، ④ **لزوم**،لازم كيدل

**تشريح:-** دليل دا دې چې په انتظار كې د بائع ضرر دې.په دې طريقه چې مبيع خو دده د قبضې نه اووتلو.اوثمن دده لاس ته نه دې راغلې.په دې وجه انتظار كولوكې سراسر د بائع نقصان دې.اود مشترى په ثمن وركولوكې هيڅ ضرر نشته.خكه چې مشترى پخپل حجت باندې پاته دې.نو كله چې گواهان حاضر شى.اوگواهى وركړى.نو مشترى به مبيع واپس كړى.اوثمن به واپس واخلى.اوښكاره ده.چه په دې كې د مشترى هيڅ نقصان نشته.

**السوال**⊛ په دې صورت باندې يو اشكال كيدلې شى.چه د قاضى د فيصلې ماتيدل،په دې صورت كې هم لازم شو.خكه چې د قاضى فيصله د ثمن ادا كاوه وه.اود گواهانو حاضرولو نه روسته د بيع واپس كولواود ثمن واپس اخستلو شوه.



**الجواب**⊛ دادې چه په دې صورت كې د قاضى فيصله مطلق نه وه.بلكه د گواهانو راتگ و پورې د ثمن ادا كاوه وه.او هركله چې د گواهانو حاضريدلو پورې د ثمن ادا كاوه فيصله اوشوه.نود گواهانو حاضريدلونه روسته د مشترى مبيع واپس كول،اود ثمن واپس اخستلوسره د قاضى د فيصلې بطلان نه لازميږى.بلكه د قاضى په فيصله باندې عمل كول لازميږى.

| **أَمَّا إِذَا نَكَلَ** البته كه بائع د قسم نه انكار اوكړلو **أُلْزِمَ الْعَيْبُ** نوعيب كيدل به لازميږى **لِأَنَّهُ حُجَّةٌ فِيهِ** خكه چې په دې كې د بائع انكار حجت دې. |
|---|

**تشريح:-** او كه مشترى گواهان پيش نكړل.بلكه ده د بائع نه د قسم مطالبه اوكړله.او بائع د قسم خوړلونه انكار اوكړلو.نو عيب به ثابت وى.خكه چې د بائع د قسم نه انكار كول د بيع په ثبوت كې حجت دې.خكه چې د بائع د قسم نه انكار دې اقرار ته مستلزم دې.چه په مبيع كې عيب دې.اود بائع اقرار پخپله په ده باندې حجت دې.په دې وجه د نكار كاوه په صورت كې په مبيع كې عيب ثابتيږى.او ددې عيب په وجه مشترى لپاره مبيع واپس كول اوثمن واپس اخستل جائز دى.

## د غلام اخستلو نه روسته د غلام تختيدلو دعوه

| **قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا** فرمائى.چاچه غلام واخستلو **فَادَّعٰى إِبَاقًا** نو دده د تختيدلو دعوه ئې اوكړله **لَمْ يُحَلَّفِ الْبَائِعُ** نود بائع څخه به قسم نشى اخستلې **حَتّٰى يُقِيمَ الْمُشْتَرِي الْبَيِّنَةَ** ترڅو چې مشترى په دې خبره باندې گواهان قائم كړى **أَنَّهُ أَبَقَ عِنْدَهُ** چې دا غلام د مشترى نه تختيدلې دې **وَالْمُرَادُ التَّحْلِيفُ عَلٰى** اود بائع نه د قسم اخستلو نه مراد په دې خبره باندې قسم اخستل دى **أَنَّهُ لَمْ يَأْبَقْ عِنْدَهُ** چې د بائع نه دا غلام نه دې تختيدلې. |
|---|

**حل اللغة:** ① **الاباق**،تختيدل، ② **التحليف**،قسم وركول، ③ **المعرفة**،پيژندل، ④ **الحجة**،دليل

**تشريح:-** صورت د مسئلې دا دې.چه مشترى د غلام تختيدلو دعوه اوكړله.اوبائع دا دروغ اوگرځول.نوقاضى به د مشترى ددې دعوې سماعت نه كوى.بلكه مشترى ته به وئيلې شى.چه مخكې د خپل اړخه غلام تختيدل ثابت كړه.نوكه مشترى په دې خبره باندې گواهان پيش كړل.چه دا غلام زما نه هم تختيدلې دې.نو قاضى به دده د دعوې سماعت كوى.او بائع ته به وائى.چه ددې تختيدلو عيب آيا تاسره هم په داسې حالت كې وو.لكه څنگه چې مشترى سره دې.او كه نه؟ نوكه بائع دا اووئيل چې زما سره چې دا غلام وو نو په هغه وخت كې په كې دا عيب نه وو يا د حالت د اختلاف دعوه ئې اوكړله.مثلاً مشترى د غلام د بالغ كيدلو نه روسته د تختيدلو دعوه اوكړله.او بائع اووئيل.چه مانه د بالغ كيدلو نه وړاندې تختيدلې وو.نو په دې صورت كې به قاضى مشترى ته وائى.چه په دې خبره باندې گواهان پيش كړه.چه دا عيب په غلام كې د بائع سره هم په دې حالت كې موجود وو.په كوم حالت كې چې ته د خان سره د عيب دعوه كوې.نو كه مشترى په دې گواهان پيش كړل.نومشترى ته به د خيارعيب لاندې د غلام واپس كاوه حق وى.او كه مشترى گواهان پيش نكړل.اود بائع نه ئې په عيب نه كيدلو باندې د قسم مطالبه اوكړله.نود بائع نه د قسم اخستلو طريقه به دا وى چې بائع به په دې خبره قسم كوى.چه دا غلام زمانه كله هم نه دې تختيدلې.

| **لِأَنَّ الْقَوْلَ وَإِنْ كَانَ قَوْلَهُ** خكه قول اگرچه د بائع قبول دې **وَلٰكِنَّ إِنْكَارَهُ إِنَّمَا يُعْتَبَرُ** خود بائع انكار به هغه وخت معتبر وى **بَعْدَ قِيَامِ الْعَيْبِ بِهِ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي** چې كله د مشترى په قبضه كې په غلام كې عيب ثابت شى **وَمَعْرِفَتِهِ بِالْحُجَّةِ** او ددې معرفت به په حجت سره كيږى. |
|---|

**تشريح:-** مشترى چې تركومه پورې د خپل اړخه په عيب باندې گواهان قائم نكړى.تر هغه وخته پورې به د بائع نه قسم نشى اخستلې.خكه چې د عيب نه د منكر كيدلو په وجه اگرچه د بائع قول معتبر دې.خو دده انكار به هغه وخت معتبر وى.چه كله مخكې د مشترى په قبضه كې عيب ثابت شى.اود مشترى په قبضه كې د عيب ثبوت د

ګواهانو په ذریعه کولې شي.په دې وجه به مخکې مشتري د خپل ځان سره د عیب ه کیدلو باندې ګواهان پیش کړي.بیا به د بائع نه قسم اخستلې شي.

**د ګواهانو پېش کولو نه روسته د بائع نه د قسم اخستلو الفاظ**

**فَإِذَا أَقَامَهَا** نو کله چې مشتري ګواهان قائم کړل **حَلَفَ بِاللّٰهِ** نو بائع ته به د الله تعالی قسم ور کولای شي **لَقَدْ بَاعَهُ** چې ده دا غلام خرڅ کړې دې **وَسَلَّمَهُ إِلَيْهِ** او مشتري ته ئې اوسپارلو **وَمَا أَبَقَ عِنْدَهُ قَطُّ** حالانکه دا د بائع نه نه دې تختیدلې **كَذَا قَالَ فِي الْكِتَابِ**.هم دغه ډول ئې په کتاب کې وئیلې دي.

**حل اللغة:** ① ابق،تختیدلې، ② قط،هیڅ کله، ③ تسلسم،سپارل، ④ یدعی،دعوه کوی

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه کله مشتري ګواهان قائم کړل.اود خپل ځان سره ئې د غلام تختیدلوعیب ثابت کړلو.نواوس به د بائع نه قسم اخستلې شي.

**وَإِنْ شَاءَ حَلَّفَهُ بِاللّٰهِ** اوکه اوغواړي.نو قاضي دې د بائع نه د الله قسم داسې واخلي **مَا لَهُ حَقُّ الرَّدِّ عَلَيْكَ مِنَ الْوَجْهِ** چې دمشتري په تا باندې د واپس کاوه حق په هغه وجه نشته **الَّذِي يَدَّعِي** د کوم چې دې مدعی دې **أَوْ بِاللّٰهِ مَا أَبَقَ عِنْدَكَ قَطُّ** یا په خدائې قسم دا ستانه هیڅ کله نه دې تختیدلې.

**تشریح:**- او بائع درې قسمه قسم خوړلې شي.① یا به داسې وائي.چه په خدائې قسم ما دا غلام خرڅ کړلو.اومشتري ته مې اوسپارلو. حالانکه د سپارلو پورې دې زمانه کله هم نه دې تختیدلې.هم دا الفاظ په کتاب کې ذکر دي.اود کتاب نه مراد مبسوط دې.او بعضو وئیلي دي.چه دلته کې د کتاب نه مراد جامع صغیر دې.② یا به داسې وائي.چه په خدائې قسم مشتري ته زما اړخ ته د مبیع واپس کاوه حق په حالانکه په ده کې دا عیب نه وو.دې وجه نه دې ثابت،د کومې چې دې دعوه کوی.③ یا به داسې د قسم الفاظ اداکوی.،والله ددې غلام د سپارلو پورې دې زمانه نه دې تختیدلې.

**أَمَّا لَا يُحَلِّفُهُ بِاللّٰهِ لَقَدْ** بهرحال قاضي به د بائع نه (داسې) نه اخلي.چه والله بائع دا غلام خرڅ کړو **وَمَا بِهِ هٰذَا الْعَيْبُ** حالانکه په ده کې دا عیب نه وو. **بَاعَهُ وَلَا بِاللّٰهِ لَقَدْ بَاعَهُ** اونه به داسې قسم ورکوی.چه والله هغه دغه غلام خرڅ کړو **وَسَلَّمَهُ** او هغه ته ئې ا وسپارلو **وَمَا بِهِ هٰذَا الْعَيْبُ** حالانکه په ده کې دا عیب نه وو.

**تشریح:**- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه په دې الفاظو سره به قسم نشي اخستلې.① بائع اووئیل.په خدائې قسم مادا غلام خرڅ کړلو.حالانکه په ده کې دا عیب نه وو.② یا ئې اووئیل.په خدائې قسم دا غلام مې خرڅ کړلو.او مشتري ته مې اوسپارلو.حالانکه په ده کې دا عیب نه وو.په دې دواړو صورتونو کې به د بائع قسم معتبر نه وي.

**لِأَنَّ فِيهِ تَرْكَ النَّظَرِ لِلْمُشْتَرِي** ځکه چې په دې کې په هریو صورت کې د مشتري لحاظ پریخودلې شي **لِأَنَّ الْعَيْبَ قَدْ يَحْدُثُ بَعْدَ الْبَيْعِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ** ځکه چې عیب کله کله د خرڅولو نه روسته (او) د سپارلو نه وړاندې پیدا کیږي **وَهُوَ مُوجِبٌ لِلرَّدِّ** او دا هم د واپسۍ موجب دې **وَالْأَوَّلُ ذُهُولٌ عَنْهُ** حالانکه په ړومبي صورت کې دده نه غفلت دې.

**حل اللغة:** ① ترکه،پریخودلې، ② النظر،لحاظ، ③ یحدث،پیدا کیږي، ④ ذهول،غفلت

**تشریح:**- دلیل دا دې چې په ذکرشوی دواړو صورتونو کې دمشتري لحاظ ختمیږي.په دې طریقه چې کله د خرڅولو نه پس،او مشتري ته د سپارلو نه وړاندې په مبیع کې عیب پیدا کیدلې شي.او ددې عیب په وجه مشتري ته د مبیع واپس کاوه اختیار وي.او بائع اووئیل.چه والله مادا خرڅ کړلو.حالانکه په ده کې عیب نه وو.نود بائع مطلب دا شو.چه د خرڅولو په وخت عیب نه وو.بلکه روسته د سپارلو نه وړاندې پیدا شو.نو بائع په خپل قسم کې رښتونې شو.او اوریدونکې ددې منطق (چالاکۍ) نه ناخبره دې.نو په دې کې سراسر د مشتري نقصان دې.ځکه چې په دې صورت کې د مبیع واپس کاوه اختیار وي.خود بائع د قسم نه د ناخبره کیدلو په وجه خلګو دا خیال اوکړلو.چه بائع چونکه قسم اوخوړلو.په دې وجه به مشتري له د مبیع واپس کولوحق نه وي.او ښکاره ده.چه په دې



کې د مشتري نقصان دې.په دې وجه به په دې الفاظوسره بائع ته د قسم خوړلو اجازت نشي ورکولې.

**وَالثَّانِي يُوهِمُ** او په دوهم صورت کې وهم کیږي **تَعَلُّقَهُ بِالشَّرْطَيْنِ** چې د عیب نه کیدلو تعلق دواړو شرطونو سره دې **فَيَتَأَوَّلُهُ فِي الْيَمِينِ عِنْدَ قِيَامِهِ وَقْتَ التَّسْلِيمِ** نو بائع به په قسم کې (دا) تاویل کوی.چه عیب د مبیع سپارلو په وخت موجود دې **دُونَ الْبَيْعِ** خود خرڅولو په وخت موجود نه وو.

**حل اللغة:** ① یوهم،وهم پیدا کوی، ② یتناول،شامليږي، ③ التسلیم،سپارل، ④ البیع،خرڅول

**تشریح:**- او په دوهم صورت کې چې کله بائع اووئیل.،والله دې ماخرڅ کړلو او ومې سپارلو.حالانکه په ده کې عیب نه وو.نو اوریدونکو ته به دا وهم وي.چه دعیب نه کیدلو تعلق د بیع او تسلیم دواړو سره دې.یعنی اوریدونکي به په دې الفاظوسره دا ګڼړي.چه د بائع مقصد دادې.چه نه د خرڅولو په وخت څه عیب وو.اونه د سپارلو په وخت څه عیب وو.او بائع به دا تاویل کوی.چه اجتماعي طور په دې دواړو حالتونو کې عیب نه وو.بلکه د سپارلو په وخت عیب وو.اګرچه د خرڅولو په وخت عیب نه وو.حالانکه په دې صورت کې مشتري ته د مبیع واپس کاوه اختیار وي.خود بائع د قسم نه ئې دهوکه خوړلو سره د مشتري دا اختیار سلب شو.او په دې کې د مشتري سراسر نقصان دې.په دې وجه په دې الفاظوسره به هم بائع ته د قسم خوړلو اجازت نشي ورکولې.

**د ګواهانو په غیر موجودګۍ کښې د بائع قسم**

**وَلَوْ لَمْ يَجِدِ الْمُشْتَرِي بَيِّنَةً عَلَى قِيَامِ الْعَيْبِ عِنْدَهُ** اوکه مشتري خپل ځان سره د عیب موجود کیدلو باندې ګواهان موجود نکړل **وَأَرَادَ تَحْلِيفَ الْبَائِعِ** اود بائع نه ئې (په دې الفاظو سره) د قسم اخستلو اراده اوکړله **مَا يَعْلَمُ أَنَّهُ أَبَقَ عِنْدَهُ** چې والله ده ته علم نشته.چه دا غلام د مشتري نه تختیدلې دې **يُحَلَّفُ عَلَى قَوْلِهِمَا** نود صاحبینو رحمهما الله په قول باندې به د بائع نه قسم اخستلې شي.

**حل اللغة:** ① تحليف،قسم ورکول ② ،البینة،ګواهان، ③ یترتب،مرتب کیږي، ④ خصم،جګړه کونکې

**تشریح:**- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.که مشتري خپل ځان سره په موجود عیب باندې ګواهان پیش نکړې شو.او ده مطالبه اوکړله.چه بائع دې قسم اوخوري.چه ماته معلومه نه ده.چه دا غلام د مشتري نه تختیدلې دې.او که نه دې تختیدلې.یعنی د تختیدلوعیب مشتري سره ښکاره شوې دې.او که نه دې ښکاره شوې.ماته هیڅ معلوم نه دی.د صاحبینو رحمهما الله په نیزمشتري د بائع نه داسې قسم اخستلې شي.

**وَاخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اود ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې مشائخو اختلاف کړې دې.

**تشریح:**- البته د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب په اړه کې د مشائخواختلاف دې.د بعضومشائخو خیال دې.چه د امام صاحب رحمه الله په نیزهم مشتري ته د بائع نه د قسم اخستلو حق شته.او بعض وائي.چه د امام اعظم رحمه الله په نیز مشتري ته داحق حاصل نه دې.

**لَهُمَا** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې **أَنَّ الدَّعْوَى مُعْتَبَرَةٌ** چې دعوه معتبر ده **حَتَّى يَتَرَتَّبَ عَلَيْهَا الْبَيِّنَةُ** تردې چې په دې باندې ګواهي مرتب ده **فَكَذَا يَتَرَتَّبُ التَّحْلِيفُ** ځکه به قسم اخستل هم مرتب وي.

**تشریح:**- د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د مشتري په غلام کې د تختیدلو دعیب دعوه صحیح او معتبر ده.اود معتبر کیدلو دلیل دادې.چه په دې باندې شهادت مرتب شوې دې.چه عیب ثابتولو لپاره مشتري نه دګواهانو مطالبه شوې وه.او په څه چې د ګواهانو مطالبه اوشي.په هغې باندې قسم اخستل هم مرتب کیږي.په دې وجه دې دعوه باندې قسم اخستلې شي.حاصل داچه مشتري که په دې خپله دعوه باندې ګواهان پیش کړل.نو ددوی ګواهي به قبلولې شي.او که مشتري ګواهان پیش نکړل.نود بائع څخه به په ذکرشوی الفاظو سره قسم اخستلې شي.یعنی بائع به دا وائي.،،والله د مشتري نه ددې غلام تختیدل ماته معلوم نه دي.،،

**وَلَهُ عَلَى مَا قَالَهُ الْبَعْضُ** اود بعض مشائخ د قول مطابق د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې **أَنَّ الْحَلِفَ يَتَرَتَّبُ عَلَى دَعْوَى صَحِيحَةٍ**

چې په صحيح دعوه باندې قسم مرتب كيږي **وَلَيْسَتْ تَصِحُّ إِلَّا مِنْ خَصْمٍ** او دعوه نه صحيح كيږي.مگر د خصم د اړخه **وَلَا يَصِيرُ خَصْمًا فِيهِ** او مشتري به په دې دعوه كې خصم نه وي **إِلَّا بَعْدَ قِيَامِ الْعَيْبِ** مگر د عيب د ثبوت نه پس.

**تشريح:**- د هغه مشائخو د قول په بنا (بنياد) باندې (څوك چې مشتري ته د بائع نه د قسم اخستلو اجازت نه وركوي) د امام صاحب رحمه الله د قول دليل دادې چه د قسم ترتب په دعوه صحيحه باندې كيږي.او دعوه صحيح كيږي د خصم د اړخه او مشتري په ذكرشوې مسئله كې خصم هغه وخت كيدلې شي.چه كله دې د خپل اړخه عيب(يعنې د غلام تختيدل) په دليل شرعي( شهادت) سره ثابت كړي.حالانكه مشتري د عيب په ثبوت باندې بينه نه وو پيش كړې.نو مشتري به خصم نه وي.نو دده د اړخه به دعوه هم صحيح نه وي.او هركله چې دعوه صحيح نشوه.نو په دې به د قسم مطالبه هم نه كيږي.په دې وجه موږ اوونيل.چه د حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز مشتري ته د بائع نه د قسم اخستلو حق نشته.

حاصل داشو.چه په دې مسئله كې مشتري خصم نشو.نو دده د اړخه دعوه هم صحيح نه وي.اوهركله چې د مشتري د اړخه دعوه صحيح نشوه.نو په دې به قسم هم نشي اخستلې.يعنې مشتري ته به د بائع نه د قسم اخستلو اجازت نه وي.او بينه د خصم ثابتولو لپاره مشروع شوې دي.نو بينه ددې تقاضا نه كوي.چه د بينه پيش كونكې،د بينه پيش كاوه نه وړاندې خصم شي.البته قسم اخستل ددې خبرې تقاضاكوي.چه قسم اخستلو والا د وړاندې نه خصم وي.

**وَإِذَا نَكَلَ عَنِ الْيَمِينِ عِنْدَهُمَا** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز چې كله بائع د قسم خوړلو نه انكار اوكړلو **يَحْلِفُ ثَانِيًا لِلرَّدِّ** نو دوباره به دده نه د واپسۍ لپاره په هغه طريقه قسم اخستلې شي **عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي قَدَّمْنَاهُ** كوم چې موږ وړاندې بيان كړل.

**حل اللغة:** ① نكل،انكار اوكړو، ② الوجه،طريقه، ③ الكبير،لوئي ④ مبلغ،حد

**تشريح:**- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د صاحبينو رحمهما الله په مذهب باندې هركله بائع د خپلې لاعلمۍ قسم خوړلو نه انكار اوكړلو.نو اوس به د بائع نه دوباره په دې طريقه قسم اخستلې شي.كوم چې د مسئلې په پيل كې بيان شوې دې.يعنې هركله چې بائع د لاعلمۍ قسم خوړلو نه انكار اوكړلو.نو دده د انكار كاوه په وجه مشتري سره عيب ثابت شو.او مشتري چونكه ددې عيب په وجه مبيع واپس كوي.په دې وجه به بائع اوس دوباره په دې قسم خوري.چه،،والله ما دا غلام خرڅ كړلو.او اومې سپارلو.حالانكه زما نه دا غلام هيڅ كله نه دې تختيدلې،،يعنې دا عيب هيڅ كله نه دې پيدا شوې.يا ددې پشان چې نورې كومې دوې (دوه) طريقې په كتاب كې ذكر دي.په هغې سره به قسم خوري.كه بائع خپل ځان سره د عيب په نه موجود كيدلو باندې قسم اوخوړلو.نو مشتري ته به د غلام واپس كاوه اختيار نه وي.ځكه چې د عيب حادث اوجديد په وجه مشتري ته د مبيع واپس كاوه اجازت نشته.خوكه بائع ددې قسم خوړلونه هم انكار اوكړلو.نو اوس مشتري غلام واپس كولې شي.ځكه چې د انكار كاوه په وجه عيب بائع سره هم ثابت شوې دې.اوكوم عيب چې بائع سره پيدا شوې وي.د هغې په وجه مبيع واپس كولې شي.

**قَالَ إِذَا كَانَتِ الدَّعْوَى فِي إِبَاقِ الْكَبِيرِ** مصنف رحمه الله فرمائي.چه كله دعوه د بالغ غلام په تختيدلو كې وي **يَحْلِفُ** نو بائع به قسم خوري **مَا أَبَقَ مُنْذُ بَلَغَ مَبْلَغَ الرِّجَالِ** چې د كوم وخت نه دې د سړو پشان د بلوغ مرتبې ته رسيدلې دې.زما نه كله هم نه دې تختيدلې.

**تشريح:**- صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چه مشتري د تختيدلو دعوه كه د بالغ غلام په اړه كې اوكړله.نو بائع به داسې قسم خوري.چه،،د بالغ كيدلو نه روسته دا غلام زمانه هيڅ كله نه دې تختيدلې،،

**لِأَنَّ الْإِبَاقَ فِي الصِّغَرِ** ځكه چې د وړوكوالي په عمر كې تختيدل **لَا يُوجِبُ رَدَّهُ بَعْدَ الْبُلُوغِ** د بالغ كيدلو نه روسته د واپسۍ موجب نه دې.

**تشريح:**- دليل دا دې كه د بالغ كيدلو نه وړاندې داغلام د بائع نه تختيدلې وي.اود مشتري نه د بالغ كيدلو نه



روسته تختيدلې وي.نو په دې صورت كې به مشتري ته د غلام واپس كاوه حق نه وي.ددې وجه وړاندې بيان كړې شوې ده.

## د مشتري د عيب اود بائع د دوېمې وينځې دعوه

**قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً** فرمائي.اوكه يوكس وينځه واخستله **وَتَقَابَضَا** او مشتري په وينځه باندې او بائع په ثمن باندې قبضه اوكړله **فَوَجَدَ بِهَا عَيْبًا** بيا مشتري په وينځه كې څه عيب اوموندلو **فَقَالَ الْبَائِعُ: بِعْتُكَ هَذِهِ وَأُخْرَى مَعَهَا** نو بائع اوونيل.چه ما ستا په لاس دا وينځه او ددې سره بله وينځه خرڅه كړې ده **وَقَالَ الْمُشْتَرِي: بِعْتَنِيهَا وَحْدَهَا** او مشتري اوونيل.تا په ما باندې يواځې دا وينځه خرڅه كړې ده **فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي** نود مشتري قول به قبول وي.

**حل اللغة:** ① الجارية،وينځه، ② تقابضا،په بدلينو باندې قبضه اوكړه، ③ وحده، ځانله ، ④ المشتري، اغستونكې

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړي يوه وينځه واخستله.او مشتري په وينځه باندې اوبائع په ثمن باندې قبضه اوكړله.بيا مشتري ته په وينځه كې څه عيب محسوس شو.نو مشتري وينځه واپس كول.او پوره ثمن واپس اخستل اوغوښتل.نو بائع اوونيل.چه ماتا وينځه يقينا خرڅه كړې وه.خو ددې سره مې يوه وينځه بله هم خرڅه كړې وه.په دې وجه تاته د عيب دارې وينځې په واپس كولودې د برخې (حصې) په اندازه ثمن واپس اخستلو اختيار دې.د پوره ثمن واپس اخستلو هيڅ حق نشته.مشتري اوونيل.چه تا په ما باندې صرف هم دا يوه وينځه خرڅه كړې ده.په دې وجه به پوره ثمن واپس اخلم.او اتفاقاً گواهان د يوسره هم نشته.نوپه داسې صورت كښې دمشتري قول معتبر دې.

**لِأَنَّ الِاخْتِلَافَ فِي مِقْدَارِ الْمَقْبُوضِ** ځكه په كوم شي چې قبضه اوكړې شوه.د هغې په مقدار كې اختلاف دې **فَيَكُونُ الْقَوْلُ لِلْقَابِضِ** نود قبضه كونكې قول به قبول وي **كَمَا فِي الْغَصْبِ** لكه څنگه چې په غصب كې كيږي.

**تشريح:**- دليل دا دې چې په كوم شي باندې قبضه شوې ده.ددې په مقدار كې اختلاف دې.بائع دعوه كوي.چه مشتري په دوې (دوه) وينځو باندې قبضه كړې ده.اومشتري وائي.چه ما په يوه وينځه قبضه كړې ده.او په مقبوض مقدار كې د اختلاف په صورت كې د قابض قول معتبر وي.قابض كه امين وي.اوكه ضمين وي.ځكه چې غيرقابض يعنې قبضه وركونكې مثلاً بائع د زياتوالي دعوه كوي.اوقابض يعنې قبضه كونكې مثلا مشتري دزياتوالي نه انكار كوي.اوبينه د يوكس سره هم موجود نه دي.نود منكر يعنې د قابض قول به قبلولې شي.لكه څنگه چې دغاصب او مغصوب منه په مينځ كې د اختلاف په صورت كې كيږي.مثلا مغصوب منه اوونيل.چه تا زما دوې (دوه) غلامان غصب كړي دي.او غاصب وائي.چه ما يو غلام غصب كړې دې.نود مقبوض مقدار په سلسله كې د غاصب قول معتبر وي.ځكه چې غاصب، قابض دې.او وړاندې تيرشوي دي.چه د قابض قول معتبر وي.په دې وجه به د غاصب قول معتبر وي.

**وَكَذَا إِذَا اتَّفَقَا عَلَى مِقْدَارِ الْمَبِيعِ** هم دغه ډول كه دواړو د مبيع په مقدار باندې اتفاق اوكړلو **وَاخْتَلَفَا فِي الْمَقْبُوضِ** اود مقبوض په مقدار كې يې اختلاف اوكړلو **لِمَا بَيَّنَّا** د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

**تشريح:**- اوهم دغه ډول كه بائع اومشتري دواړو د مبيع په مقدار باندې اتفاق اوكړلو.چه مبيع دوې (دوه) وينځې دي.خو په مقدار مقبوض كې اختلاف اوشو.په دې طريقه چې بائع وائي.مشتري په دواړو باندې قبضه كړې ده.او مشتري وائي.چه ما صرف يوې وينځې باندې قبضه كړې ده.نو په دې صورت كې هم چونكه مشتري قابض دې.په دې وجه به دده قول معتبر وي.

## په يوعقد كښې دوې (دوه) غلامانو اخستلو كښې په يوكښې عيب پيداكيدل

**قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدَيْنِ صَفْقَةً وَاحِدَةً** فرمائي.كه يوكس دوې (دوه) غلامان د يوعقد لاندې واخستل **فَقَبَضَ أَحَدَهُمَا**

يا په دي دوارو كي ئې په يو باندې قبضه اوكړله **وَوَجَدَ بِالْآخَرِ عَيْبًا** او په دوهم كي ئې څه عيب بيا موندلو **فَإِنَّهُ يَأْخُذُهُمَا أَوْ يَدَعُهُمَا** نو دواړه غلامان دې واخلي. يا دې دواړه واپس كړي.

**حل اللغة:** ① صفقة:عقد ، ② ياخذ:اخلی ،③ يدع:پريږدی ،④ تفريق:جدا كيدل

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې. كه يوكس په عقدواحد كي دوې (دوه) غلامان واخستل مثلا بائع اووئيل چه ما دا دواړه غلامان د زرو درهموپه عوض ستا په لاس خرڅ كړل. مشتری قبول كړل. اوبه دې كي ئې يو غلام (كوم چې بې عيب دې) قبضه كړلو. او په دوهم كي څه عيب په نظر راغئ؛ نو مشتری ته دا حق نشته. چه دې عيب دارغلام واپس كړي. او سليم(بې عيبه) واخلي. بلكه د پوره ثمن په عوض به يادواړه اخلي. يا به دواړه واپس كوی.

**لِأَنَّ الصَّفْقَةَ تَتِمُّ بِقَبْضِهِمَا** څكه چې صفقه په دواړو باندې قبضه كاوه سره تماميږی **فَيَكُونُ تَفْرِيقُهَا قَبْلَ التَّمَامِ** نو ( د يو په واپس كاوه سره ) تفريق د صفقه قبل التمام لازميږی **وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ** اودا موږ وړاندې ذكر كړی دی.

**تشريح:-** دليل دادې. چه دخيارعيب په صورت كي صفقه په مبيع باندې د قبضه نه روسته تماميږی. خود قبضه نه وړاندې نه تماميږی. لكه چې وړاندې تيرشو. نو په دې مسئله كي صفقه هغه وخت تماميږی. چه كله په دواړو غلامانو باندې مشتری قبضه اوكړي. حالانكه مشتری صرف په يوغلام باندې قبضه كړې ده. نود مشتری عيب دارغلام واپس كول. او بې عيبه غلام اخستل ،،تفريق صفقه قبل التمام،، ده. او ،،تفريق صفقه قبل التمام،، ناجائز ده.

**وَهٰذَا لِأَنَّ الْقَبْضَ لَهُ شَبَهٌ بِالْعَقْدِ** اودا څكه دی. چه قبضه د عقد مشابه ده **فَالتَّفْرِيقُ فِيهِ كَالتَّفْرِيقِ فِي الْعَقْدِ** نو په قبضه كي تفريق تامول د عقد د تفريق پشان دې.

**تشريح:-** اوپه قبضه كي تفريق صفقه څكه ناجائز ده. چه قبضه د عقد مشابه ده. په دې طريقه چې عقد په مبيع كي ملك رقبه ثابتوی. او قبضه ملك تصرف اوملك يد ثابتوی. اود ملك رقبه نه مقصود هم ملك تصرف اوملك يد وی. نو ثابته شوه. چه په عقد بيع، او په قبضه مبيع دواړو كي مقصود، ملك تصرف اوملك يد ثابتول دی. اوهركله چې د دواړو مقصود يو دې. نو دواړه د يوبل مشابه شو. او هركله چې قبضه اوعقدبيع دواړو كي مشابهت اوشو. نو په قبضه كي تفريق صفقه كول، په عقد كي د تفريق پشان شو. او په عقدكي تفريق ناجائز دې. په دې وجه په قبضه كي تفريق كول هم ناجائز دی. په عقدكي د تفريق كاوه صورت دادې. چه يوسړی اووئيل. ما دا دوې (دوه) غلامان د زرو درهمو په عوض خرڅ كړل. مشتری اووئيل. ما په دې كي په يوغلام كي بيع قبول كړله. نودا جائز نه دی. دغه ډول په يوباندې قبضه كول، او يود عيب په وجه واپس كول ناجائز دی.

**وَلَوْ وَجَدَ بِالْمَقْبُوضِ عَيْبًا** اوكه ده په مقبوض غلام كي عيب اوموندلو **اخْتَلَفُوا فِيهِ** نو په دې كي د مشائخو اختلاف دې **وَيُرْوَى عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ** اود ابويوسف رحمه الله نه روايت كولای شی **أَنَّهُ يَرُدُّهُ خَاصَّةً** صرف مقبوض به واپس كوی.

**تشريح:-** اوكه مشتری په دې غلام كي عيب اوموندلو. په كوم ئې چې قبضه كړې ده. او دوهم غلام په كوم ئې چې قبضه نه ده كړې. هغه دعيب نه سالم دې. نو په دې كي د مشائخو اختلاف دې. د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی. چه مشتری به خاص طورسره عيب دارغلام واپس كوی. اودده د برخې (حصې) ثمن به اخلي. او بې عيبه به نه واپس كوی. څكه چې د مقبوض غلام په حق كي صفقه تمام شوې ده. نود مقبوض غلام په اړخ نظر كاوه سره تفريق د صفقه نه لازميږی. اوهركله چې تفريق د صفقه نه لازميږی. نوددې په جواز كي هيڅ شبه نشته.

**وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَأْخُذُهُمَا** او اصح دادی. چه دواړه دې واخلي **أَوْ يَرُدُّهُمَا** يا دې دواړه واپس كړي.

**تشريح:-** خو اصح قول دادې. چه په دې صورت كي هم مشتری د پوره ثمن په عوض دواړه غلامان واخلي. يا دې دواړه واپس كړي.

**لِأَنَّ تَمَامَ الصَّفْقَةِ تَعَلَّقَ بِقَبْضِ الْمَبِيعِ** څكه چې د صفقه مكمل كيدل د مبيع قبضه كاوه سره متعلق دی **وَهُوَ اسْمٌ لِلْكُلِّ**



او مبيع د كل نوم دې.

**تشريح:-** دليل دا دې چې د صفقه پوره كيدل په مبيع باندې د قبضه كاوه سره متعلق دی. يعنی د مشتری په مبيع باندې د قبضه كولو نه روسته صفقه پوره كيږی. او مبيع ددې كل نوم دې. په كوم چې عقد واقع شوې دې. اوعقد د بيع په دوې (دوه) غلامانو باندې واقع شوې دې. نو په دواړو غلامانو باندې د قبضه كاوه نه روسته صفقه پوره كيږی. او په ذكرشوی صورت كي چونكه يو غلام باندې قبضه شوې ده. او په يوباندې قبضه نه ده شوې. په دې وجه دې صورت كي صفقه نه ده پوره شوې. اوهركله چې صفقه پوره نشوه. نود يوغلام په واپس كولوكي به تفريق صفقه قبل التمام لازم شی. اوتفريق صفقه قبل التمام ناجائز ده. په دې وجه په دې صورت كي هم يوغلام واپس كول، اويو نه واپس كول ناجائز دی. او مبيع ددې كل نوم دې. په كوم چې بيع واقع شوې ده.

**فَصَارَ كَحَبْسِ الْمَبِيعِ** نودا داسې شوه. لكه مبيع خان سره ساتل **لَمَّا تَعَلَّقَ زَوَالُهُ بِاسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ** چې كله مبيع د خان سره ساتل زائل كيدل د ثمن وصولولو سره متعلق وی **لَا يَزُولُ دُونَ قَبْضِ جَمِيعِهِ** نود مبيع د خان سره د ساتلوحق په پوره ثمن باندې د قبضه كاوه نه بغير نه زائل كيږی.

**حل اللغة:** ① حبس:بنديز ، ② زوال:زائل كيدل ،③ جميع:پوره\ټول ،④ دون:بغير

**تشريح:-** ددې مثال دادې. كه بائع مبيع خپل خان سره څكه بند اوساتلو. چه كله مشتری ثمن ادا كړي. نو زه به مبيع وا روسته كړم. نود بائع دا حق به دهغه وخت پورې نه زائل كيږی. چه تركومه پورې مشتری پوره ثمن ادانكړي. كه مشتری څه ثمن ادا كړلو. نو بيابه هم بائع ته د مبيع منع كاوه حق حاصل وی. څكه چې ثمن د پوره عوض نوم دې. دبعض عوض نوم نه دی. دغه ډول مبيع هم د پوره معوض نوم دې. د بعض معوض نوم نه دې.

**وَلَوْ قَبَضَهُمَا** اوكه په دواړه غلامانو باندې ئې قبضه اوكړله **ثُمَّ وَجَدَ بِأَحَدِهِمَا عَيْبًا** بيا ئې په يوكي عيب اوموندلو **يَرُدُّهُ خَاصَّةً**[1] نو صرف هم دادې واپس كړي.

**تشريح:-** اوكه مشتری په دواړو غلامانو باندې قبضه اوكړله. بيا ئې په دې كي په يوكي عيب اوموندلو. نودې صرف عيب دارغلام ددې د برخې (حصې) د ثمن په عوض واپس كولې شی.

**خِلَافًا لِزُفَرَ** په دې كي د امام زفر رحمه الله اختلاف دی **هُوَ يَقُولُ: فِيهِ تَفْرِيقُ الصَّفْقَةِ** دې وائی. چې په دې كي هم تفريق صفقه ده **وَلَا يَعْرَى عَنْ ضَرَرٍ** اود ضرر نه خالی نه ده **لِأَنَّ الْعَادَةَ جَرَتْ بِضَمِّ الْجَيِّدِ إِلَى الرَّدِيءِ** څكه ( عام) عادت داجاری دې. چه ردی سره اعلی ملاوهی. او وركوی.

**حل اللغة:** ① تفريق:جدا كيدل ،② يعرى:خالی كيږی ،③ جرت:روان\جاری ،④ الجيد:ښه

**تشريح:-** امام زفر رحمه الله فرمائی. چه په دې صورت كي به هم دواړه غلامان واپس كوی. يا به دواړه اخلي. خاص طور د يو واپس كاوه اختيارنشته. د امام زفر رحمه الله دليل دادې. چه په دې صورت كي هم تفريق د صفقه ده. اګرچه بعدالتمام ده. او په دې كي د بائع ضرر دې. څكه چې د خلګو عادت دادې. چه دوی د اعلی سره ردی يوځائې كوی. او بيا ئې خرڅوی. نو كه مشتری ته د يو غلام واپس كاوه اجازت وركړې شو. نود بائع نقصان به وی. په دې طريقه چې مشتری كوم غلام واپس كړلو. هغه ردی شو. او اعلی ئې خپل خان سره اوساتلو. نود بائع لپاره به ددې ردی غلام جلا خرڅول مشكل وی. نود بائع نه د ضرر لرې كاوه لپاره صرف د عيب دارغلام واپس كاوه اجازت نشته. اودا مابعدالقبض صورت، د ماقبل القبض مشابه دی. او ددې دواړو په مينځ كي جامع دفع ضرر دادې. يعنی لكه څنګه چې د قبضه كاوه نه وړاندې د بائع نه ضرر لرې كاوه لپاره صرف عيب دار غلام واپس كاوه اجازت نشته. د قبضه

[1] القول الراجح هو هذا قول الجمهور رحمهم الله كذا فى فتح القدير(٦\٣١) والدرالمختار(٤\١٠٤) والبحرالرائق (٦\٦٣)نقلاً عن القول الراجح (٢\٣١)_

کاوه نه روسته هم صرف د عيب دارغلام واپس کولواجازت نشته.دغه ډول د بائع نه د ضرر لرې کاوه لپاره د قبضه کاوه نه روسته به هم صرف عيب دارغلام واپس کاوه اجازت نه وی.

فَأَشْبَهَ مَا قَبْلَ الْقَبْضِ وَخِيَارَ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ نودا د قبضه نه وړاندې، يا خيار رؤيت يا د خيار شرط په وجه ( يوته د واپس کولو) مشابه شو.

تشريح:- اودا دخيار رؤيت اود خيارشرط مشابه شو.يعنى لکه څنګه چې خيار رؤيت اود مشترى لپاره دخيارشرط په وجه په دوې (دوه) غلامانوکې يو خپل ځان سره د ساتلو اجازت نه وی.

وَلَنَا او زمونږ دليل دادې أَنَّهُ تَفْرِيقُ الصَّفْقَةِ بَعْدَ التَّمَامِ چې دلته کې د صفقه تماميدلو نه روسته تفريقه د صفقه ده لِأَنَّ بِالْقَبْضِ تَتِمُّ الصَّفْقَةُ فِي خِيَارِ الْعَيْبِ ځکه چې په خيار عيب کې په قبضه سره صفقه تماميږی.

تشريح:- زمونږ دليل دادې.چه هرکله مشترى په دواړو غلامانو باندې قبضه اوکړله.نود قبضه کاوه په وجه صفقه تمام شوه.ځکه چې د خيارعيب په صورت کې په مبيع باندې د قبضه کاوه نه وړاندې اګرچه صفقه نه مکمل کيږی.خود قبضه کولونه روسته صفقه مکمل کيږی.نو مابعدالقبض صرف د عيب دارغلام په واپس کولوسره به بلاشبه تفريق د صفقه وی.خوتفريق صفقه به بعدالتمام وی.قبل التمام به نه وی.اوتفريق صفقه قبل التمام اګرچه ناجائز ده.خو تفريق صفقه بعدالتمام جائز ده.په دې وجه مونږ مابعدالقبض صرف د عيب دارغلام واپس کاوه اجازت ورکړې دې.

وَفِي خِيَارِ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ لَا تَتِمُّ بِهِ او په خيار رؤيت او خيارشرط کې په قبضه سره صفقه نه تماميږی عَلَى مَا مَرَّ لکه چې وړاندې تيرشو.

تشريح:- پاتې شو خيار رؤيت،او خيارشرط نود خيارعيب په دې باندې قياس کول جائز نه دی.ځکه چې د خيار رؤيت او خيارشرط دواړو په وجه صفقه نه مکمل کيږی.نه د قبضه کاوه نه وړاندې.او نه د قبضه نه پس.دخيار رؤيت اود خيارشرط په صورت کې که مابعد القبض هم يو غلام واپس کړلو.او يو ئې واپس نکړلو.نو تفريق صفقه قبل التمام لازميږی.حالانکه دا ناجائز ده.اود خيارعيب په صورت کې مابعدالقبض که يو غلام واپس کړلو.او يو ئې واپس نکړلو.نو تفريق صفقه بعدالتمام لازميږی.اودا جائز ده.نود دومره قدرې توپير سره خيارعيب، په خيار رؤيت او خيارشرط باندې قياس کول څنګه ټيک دی.

وَلِهَذَا لَوْ اُسْتُحِقَّ أَحَدُهُمَا هم په دې وجه که په دې دواړوکې يو مستحق شو. لَيْسَ لَهُ أَنْ يَرُدَّ الْآخَرَ نود مشترى لپاره دوهم نه واپس کول جائز نه دی.

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمانی.چه د خيارعيب په صورت کې د مشترى په دواړو غلامانو باندې قبضه کاوه نه روسته که د يوغلام مستحق شو.يعنى د بائع نه علاوه چا په يوغلام کې د استحقاق دعوه ثابت کړله.اودا ئې واخستلو.نومشترى به د بائع نه ددې برخې (حصې) ثمن واپس اخلی.خو مشترى ته به د دوهم غلام واپس کاوه اختيار نه وی.ځکه چې د قبضه نه روسته تفريق صفقه بعدالتمام لازميږی.اودا جائز دی.خو که په مبيع د قبضه نه وړاندې د يوغلام مستحق شو.نو مشترى ته به د دوهم غلام واپس کاوه اجازت نه وی.ځکه چې په دې صورت کې تفريق صفقه قبل التمام ده.اودا ناجائز ده.نوددې عدم جواز نه د بچ کيدلو لپاره دوهم غلام هم واپس کولې شی.(کفايه عنايه)

## د مکيلی يا موزونی څيز په بعض کښې عيب پيدا کيدل

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى شَيْئًا فرمانی.او چاچه داسې شئ خرڅ کړو مِمَّا يُكَالُ چې ناپ کولای شی أَوْ يُوزَنُ يا وزن کولای شی فَوَجَدَ بِبَعْضِهِ عَيْبًا بيا ئې ددې څه برخه عيب دار اوموندله رَدَّهُ كُلَّهُ نودا واړه دې واپس کړی أَوْ أَخَذَهُ كُلَّهُ يا دې واړه واخلی. وَمُرَادُهُ بَعْدَ الْقَبْضِ اود ماتن مراد د قبضه نه روسته دې.



حل اللغة: ① ذ يکل،ناپ کيږی، ② يوزن،وزن کيږی، ③ وجد،موندل، ④ رد،واپس کيدل

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس څه مکيلی شئ غنم وغيره واخستل.يائې د اوسپنې پشان څه موزونی شئ واخستلو.بيا ددې څه برخه عيب داره ښکاره شوه.نوده ته اختيار دې.چه کل واخلی.يا کل واپس کړی.صاحب دهدايه رحمه الله فرمانی.چه د ماتن يعنى د امام محمد رحمه الله مراد دادې.که عيب د قبضه کاوه نه روسته ښکاره شو.نوبيا هم دا حکم دې.يعنى د قبضه کاوه نه روسته که مشترى د مکيلی ياموزونی څيزيوه برخه عيب داره اوليدله.نوصرف عيب دار واپس کول،او بې عيبه اخستل جائز نه دی.بلکه پوره مبيع به اخلی.يا به پوره مبيع واپس کوی.د ،،بعدالقبض،، قيد ئې ځکه ذکر کړې دې.چه د قبضه کاوه نه وړاندې د مکيلی اوموزونی او ددې دواړو نه د علاوه حکم يو شان دې.يعنى د قبضه کاوه نه وړاندې عيب دار واپس کول،او بې عيبه اخستل مطلقا ناجائز دی.که مبيع د مکيلاتو اوموزوناتو د قبيلې څخنی وی.اوکه ددې دواړو نه د علاوه د قبيلې څخنی وی.اود قبضه کاوه نه روسته عيب دار واپس کول،او بې عيبه نه واپس کول، په غير مکيلی اوغير موزونی مبيع کې جائز دی.خو په مکيلی او موزونی مبيع کې جائز نه دی.اوس حاصل داشو.که يوکس مکيلی يا موزونی شئ واخستلو.په دې ئې قبضه اوکړله.بيا ددې يوه برخه عيب داره اوموندله.اودا يوجنس دې مثلا غنم دی، يا اوربشې دی.يا اوسپنه ده،نو مشترى ته به دا اختيار نه وی.چه دې صرف عيب دار واپس کړی.او بې عيبه واخلی.بلکه پوره مبيع به واپس کوی.يا به پوره مبيع اخلی.

لِأَنَّ الْمَكِيلَ إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ ځکه چې کله مکيلی شئ يوجنس دې فَهُوَ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ نودا د شئ واحد پشان دې أَلَا يُرَى أَنَّهُ يُسَمَّى بِاسْمٍ وَاحِدٍ آيا نه ګورې.چه ددې هم يو نوم دې وَهُوَ الْكُرُّ وَنَحْوُهُ [1] او هغه ،،کر،، دې.او ددې پشان دی.

تشريح:- دليل دا دې چې د يوجنس کيدلو په وجه دا د اسم اوحکم په اعتبار سره د شئ واحد په مرتبه کې دی.د اسم په اعتبارسره ځکه چې ددې هم يو نوم دې.چه د پوره مبيع لپاره يا قفيز يامن وغيره وئيلې شی.اود حکم په اعتبار سره د شئ واحد په مرتبه کې ځکه دی.چه د مکيلی اوموزونی شئ ماليت اوتقوم د اجتماع په اعتبارسره دې.ځکه چې د يوې دانې هيڅ ماليت نه وی.او نه دا متقوم وی.هم داوجه ده.چه ديوې دانې بيع ناجائز ده.او په مکيلی او موزونی څيزونوکې د بعض رؤيت دکل رؤيت شمارلې کيږی.په دې شرط چې جنس يو وی.نو ثابته شوه.چه مکيلی اوموزونی شئ پوره په پوره د مبيع په حق کې د شئ واحد په مرتبه کې دې.اود شئ واحد يوه برخه که عيب داره اوموندې شی.نو مشترى به يا پوره مبيع واپس کوی.يا به پوره مبيع آخلی.ځکه که مشترى عيب دارجزء واپس کړلو.او بې عيبه ئې ځان سره اوساتلو.نو په مبيع کې به د بائع اومشترى شرکت ثابت شی.او په مبيع واحد کې شرکت هم عيب دې.نو ګويا مشترى بائع ته عيب دار جزء واپس کړلو.د شرکت په عيب سره،اود شرکت عيب مشترى سره پيدا شوې دې.نود مشترى سره يو زياتی عيب پيدا کيدلو باوجود مشترى ته د مبيع واپس کاوه اجازت څنګه کيدلې شی.نود شرکت د عيب نه د بچ کيدلو لپاره مشترى پوره مبيع واپس کوی.يا به پوره اخلی.

وَقِيلَ هَذَا إِذَا كَانَ فِي وِعَاءٍ وَاحِدٍ او وئيلی شوی دی.چه دا هغه وخت دی.چه کله په يو لوخی کې وی فَإِذَا كَانَ فِي وِعَاءَيْنِ او که په دوې (دوه) لوخو کې وی فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ عَبْدَيْنِ نودا د دوې (دوه) غلامانو په مرتبه کې دې حَتَّى يَرُدَّ الْوِعَاءَ الَّذِي وَجَدَ فِيهِ الْعَيْبَ تردې چې په کوم لوخی کې ئې عيب اوموندلو.هم دا دې واپس کړی. دُونَ الْآخَرِ بل دې نه واپس کوی.

حل اللغة: ① وعاء،لوښې، ② يضر،نقصان رسوی، ③ خيار،اختيار، ④ تبعيض،ټکړې ټکړې کول

[1] القول الراجح هو ظاهرالرواية كذا فى (الكفاية (٣٢١٦) والدرالمنتقى (٥٠١٢) وردالمحتار (٩٣١٤) والعناية (٣١١٦) نقلاً عن القول الراجح (٣١١٢، ٣٢)-

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. که مبیع مکیلي یا موزوني شئ وی.او ددې جنس یو وی.نو ددې حکم هم هغه دې.کوم چې وړاندې ذکرشوې دې.مبیع که په یولوخې کې وی.او که په دوې (دوه) لوخو کې وی.اود بعض مشائخو مذهب دادې.چه ذکرشوې حکم هغه وخت دې.چه کله مبیع په یو لوخې کې وی.او که مبیع کوم چې د مکیلاتو یا د موزوناتو د قبیلې څخه دې.په دوې (دوه) لوخوکې وی.نودا د دوې (دوه) غلامانو پشان دې.یعنی که مشتری د قبضه نه روسته په دوې (دوه) غلامانوکې په یوکې عیب اوموندلو.نوده ته د عیب دارغلام واپس کاوه اختیارشته دې.دغه ډول که مکیلي یا موزوني مبیع په دوې (دوه) لوخو کې وی.اود قبضه نه روسته د یولوخې په مبیع کې عیب اوموندلې شو.نو خاص طور به دا واپس کوی.اود دوهم لوخې مبیع به نه واپس کوی.

**د مبیع د بعض حصې مستحق شو.نوده پاتې رد کول**

| وَلَوِاسْتُحِقَّ بَعْضُهٗ او که ددې یوه برخه مستحق شوه فَلَاخِيَارَلَهٗ فِي رَدِّمَابَقِيَ نوده ته د پاتې واپس کاوه اختیار نشته لِأَنَّهٗ لَا يَضُرُّهُ التَّبْعِيضُ ځکه چې ټکړې کول دده لپاره مضر نه دی. |
|---|

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوکس مکیلي یا موزوني شئ واخستلو.په دې ئې قبضه اوکړله.بیا ددې یوه حصه مستحق شوه.یعنی د بائع نه علاوه بل یوکس د مبیع په یوه برخه باندې د استحقاق دعوه اوکړله.او دائې واخستله.نو مشتری ته به د مابقي مبیع واپس کاوه هیڅ اختیار نه وی.ددې حکم دلیل دیو سوال خواب دې.

؟ سوال دادې.چه مکیلي اوموزوني شئ چې هرکله د شئ واحد پشان دې.لکه څنګه چې کیدل هم پکار وو.لکه چې مبیع که ثوب واحد یا غلام واحد وی.او ددې یوه برخه مستحق شوه.نود مشتری لپاره پاتې مبیع هم واپس کول واجب دی.نوهم دغه ډول د مکیلي اوموزوني مبیع یوه برخه مستحق کیدلو نه روسته پاتې مبیع هم بائع ارخ ته واپس کول واجب کیدل پکار وو؟

خواب* ددې دادې.چه په مکیلات اوموزونات کې چونکه شرکت عیب نه شمارلې کیږی.په دې وجه مکیلي اوموزوني شئ ټکړې کول د مشتری لپاره مضر نه دی.او هرکله چې په ټکړې کولوکې مشتری ته څه ضرر هم نه دې.نود مبیع د یوې برخې (حصې) مستحق کیدلو نه روسته پاتې مبیع ددې د ثمن د برخې (حصې) په عوض مشتری خپل خان سره ساتلې شی.په دې کې څه باك نشته.ددې په خلاف ثوب واحد اوغلام واحد دې.چه ددې ټکړې کول مضر دی.او په دې کې شرکت عیب دې.په دې وجه که د ثوب واحد یا غلام واحد یوه برخه مستحق شوه.نو مشتری د شرکت د عیب نه د بچ کیدلو لپاره پاتې برخه بائع ارخ ته واپس کولې شی.

| وَالْاِسْتِحْقَاقُ لَايَمْنَعُ تَمَامَ الصَّفْقَةِ او استحقاق د تمام صفقه نه مانع نه دې لِأَنَّ تَمَامَهَا بِرِضَا الْعَاقِدِ ځکه چې د صفقه تمام کیدل د عاقد په رضامندئ باندې دی لَابِرِضَا الْمَالِكِ د مالك په رضامندئ باندې نه دی. |
|---|

حل اللغة: الاستحقاق،مستحق کیدل،② تمام،پوره کیدل،③ الصفقة،عقد،④ العاقد،عقد کونکې

تشریح:- دا عبارت د یوسوال خواب دې.هغه دا چې په ذکرشوې مسئله کې مشتری ته د مابقي مبیع واپس کاوه اختیار نه کیدل،تفریق صفقه قبل التمام ته مستلزم دی.ځکه چې صفقه د مالك اومشتری په خپل مینځ کې رضامندئ سره تمامیږی.اوکوم کس چې د استحقاق دعوه اوکړله.اود مبیع مستحق برخه ئې واخستله.هغه راضی نه دې.نو دده رضامندی نه موندلو په وجه صفقه نه ده پوره شوې.او ستاسو په قول مشتری ته د پاتې مبیع واپس کاوه اجازت نشته.نودا تفریق صفقه قبل التمام شوه.او تفریق صفقه قبل التمام ناجائز ده.په دې وجه ددې ناجائز کار نه د بچ کیدلو لپاره مشتری ته د پاتې مبیع واپس کاوه اختیار پکار وو.

خواب* ددې خواب دادې.چه د مبیع د یوې برخې (حصې) مستحق کیدل د صفقه د تمام لپاره مانع نه دې.ځکه چې د صفقه پوره کیدل د عاقد په رضامندئ باندې موقوف دی.د مالك په رضامندئ باندې موقوف نه دی.اود استحقاق دعوه کونکې ددې برخې (حصې) مالك دې.عاقد نه دې.او عاقد یعنی بائع رضامند دې.نو هرکله چې عاقدین یعنی بائع اومشتری دواړه رضامند دی.نو صفقه پوره شوه.اوهرکله چې صفقه پوره شوه.نو مشتری ته د



مابقي مبیع واپس کاوه اختیار نه کیدلو په وجه تفریق صفقه بعدالتمام لازم شوه.قبل التمام لازم نشوه.او تفریق صفقه بعدالتمام جائز ده.په دې وجه اوس هیڅ اشکال واقع نشو.

| وَهٰذَا إِذَا كَانَ بَعْدَ الْقَبْضِ،اودا هغه وخت دی.چه د قبضه نه پس (استحقاق ثابت شوې وی) أَمَّا لَوْكَانَ قَبْلَ الْقَبْضِ اوکه استحقاق دقبضه نه وړاندې وی فَلَهٗ أَنْ يَرُدَّمَابَقِيَ نو مشتری ته د پاتې واپس کاوه اختیار دې لِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ قَبْلَ التَّمَامِ ځکه چې تفریق صفقه قبل التمام ده. |
|---|

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د استحقاق ثابتولو باوجود مشتری ته د پاتې مبیع واپس کاوه اختیار نه کیدل،هغه وخت دی.چه کله مشتری په مبیع باندې قبضه کړې وی.اوکه د مشتری د قبضه کاوه نه وړاندې استحقاق ثابت شو.نو په دې صورت کې مشتری ته د مابقي مبیع واپس کولواختیار دې.ځکه چې د صفقه پوره کاوه لپاره دوې (دوه) شیان ضروری دی.یود عاقدینو رضامندی دوهم د مشتری په مبیع باندې قبضه.که دا دواړه شیان یا په دې دواړو کې یوځیز اونه موندې شو.نو صفقه به پوره نه وی.نو چونکه په دې صورت کې دمشتری قبضه اونه موندې شوه.په دې وجه صفقه پوره نشوه.اوهر کله چې صفقه پوره نشوه.نود مستحق برخې (حصې) نه علاوه مابقي مبیع که مشتری خپل خان سره اوساتله.نو تفریق صفقه قبل التمام نه لازمیږی.حالانکه تفریق صفقه قبل التمام ناجائزده.په دې وجه د قبضه نه وړاندې د استحقاق ثابتیدلو په وجه مشتری ته د مابقي مبیع واپس کاوه اختیار ورکړې شوې دې.

**په کپړه کښې مذکوره صورت**

| قَالَ وَإِنْ كَانَ ثَوْبًا فرمائی.اوکه مبیع کپړه وی فَلَهُ الْخِيَارُ نو مشتری ته د واپس کاوه اختیار دې. |
|---|

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که مبیع کپړه وی.او مشتری په دې باندې قبضه اوکړله.بیا د کپړې یوه برخه مستحق شوه.نو مشتری مابقي کپړه د خیارعیب په وجه واپس کولې شی.

| لِأَنَّ التَّشْقِيصَ فِيهِ عَيْبٌ ځکه چې په دې کې ټکړې کول عیب دې وَقَدْكَانَ وَقْتَ الْبَيْعِ اودا عیب د خرڅولو په وخت موجود وو حَيْثُ ظَهَرَ الْاِسْتِحْقَاقُ چې کله استحقاق ښکاره شو. |
|---|

حل اللغة: ① تبعیض،ټکړې ټکړې کول،② ظهر،ښکاره شو،③ مکیل،چه ناپ کولې شی،④ الموزون،چه وزن کولې شی

تشریح:- دلیل دا دې چې په کپړه کې شرکت عیب شمارلې شی.او په کپړه کې شرکت عیب ځکه دې.چه کپړه ټکړې ټکړې کول مضر دی.ددې په وجه مالیت کمیږی.اود کوم شئ په وجه چې د شئ مالیت کمیږی.هغه عیب شمارلې شی.په دې وجه کپړه کې شرکت عیب شمارلې شی.اودا شرکت هغه وخت هم وو.چه کله بائع کپړه خرڅه کړله.البته دا دې وخت کې ښکاره شو.نو معلومه شوه.چه دا عیب د بائع د اړخه راغلې دې.اوکوم عیب چې د بائع د اړخه راشی.ددې په وجه مشتری ته د خیارعیب لاندې د مبیع واپس کاوه اختیار وی.په دې وجه په دې صورت کې مشتری ته د مابقي مبیع واپس کاوه اختیار وی.

| بِخِلَافِ الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ په خلاف د مکیلي او موزوني څیز. |
|---|

تشریح:- ددې په خلاف مکیلي او موزوني شیان دی.چه په دې دواړوکې چونکه ټکړې کول مضر نه دی.په دې وجه په دې دواړو کې شرکت عیب نه شمارلې کیږی.او هرکله چې په مکیلي او موزوني څیزونوکې شرکت عیب نه دې.نود قبضه نه روسته د استحقاق ثابتیدلو په صورت کې د مابقي مبیع واپس کاوه اختیار به هم نه وی.

**د وینځې د زخم علاج یا په خاروی سوریدل**

| قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً مصنف رحمه الله فرمائی.اوچا چه یوه وینځه واخستله فَوَجَدَبِهَا قُرْحًا اودا ئې زخمی اوموندله فَدَاوَاهُ نو ددې دوائی (علاج) ئې اوکړله. |
|---|

حل اللغة: ① القرح،زخم، ② داوا،دوائي اوکړه، ③ دابة،څاروي، ④ رکوب،سوریدل

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس وينځه واخستله.او دا ئې زخمي بیاموندله.بیا مشتري ددې علاج معالجه اوکړله.

أَوْكَانَتْ دَابَّةً فَرَكِبَهَا فِي حَاجَةٍ يا حيوان (څاروې) وو.د خپل اړتیا لپاره په دې باندې سور شو فَهُوَ رِضًا نودا رضامندي ده.

تشریح:- یا ئې څه حیوان (څاروې) واخستلو.اود خپل اړتیا لپاره په دې باندې سور شو.نودا د وینځې علاج کول.او په څاروی باندې سوریدل،د مشتري د اړخه په دې عیب باندې رضامندي شمارلې کیږي.مشتري ته به ددې وینځې یا څاروي واپس کولواجازت نه وي.

لِأَنَّ ذَلِكَ دَلِيلُ قَصْدِهِ الِاسْتِبْقَاءَ ځکه چې داسې کول ددې د پاته ساتلو د ارادې دلیل دې.

حل اللغة: ① الاستبقاء،ساتل، ② الاختبار،خوښول، ③ الرکوب،سوریدل ④ ،مسقط،ساقطونکې

تشریح:- دلیل دادې.چه د وینځې علاج کول،یا د خپل اړتیا لپاره په څاروی باندې سوریدل، ددې خبرې دلیل دې.چه مشتري ددې نه د نفع اخستلو اراده هم دغه وخت کړې وي.چه ددې د خپل ځان سره د ساتلو اراده وي.اود خپل ځان سره د ساتلو اراده به هغه وخت ممکن وي.چه کله خیارعیب ساقط کړي.او په عیب باندې راضي شي.نو ثابته شوه.چه مشتري په عیب باندې راضي دې.او هرکله چې مشتري په عیب باندې راضي شو.نو دده خیارعیب به هم ساقط وي.او هرکله چې خیارعیب ساقط شو.نو مشتري ته به د زخمي وینځې یا څاروي واپس کاوه اختیار نه وي.

بِخِلَافِ خِيَارِ الشَّرْطِ په خلاف د خیارشرط.

تشریح:- ځوکه د سوارلۍ حیوان (څاروې) ئې په خیارشرط سره واخستلو او مشتري په دې باندې یوځل سور شو.نو ددې سوریدلو نه وړاندې به د مشتري خیارشرط نه ساقطیږي.

لِأَنَّ الْخِيَارَ هُنَاكَ لِلِاخْتِبَارِ ځکه چې هلته کې خیار د خوښولو (چك کولو) لپاره دې وَأَنَّهُ بِالِاسْتِعْمَالِ او خوښول به دده په کار راوستلوسره کیږي فَلَا يَكُونُ الرُّكُوبُ مُسْقِطًا نو په سوریدلو سره به خیار شرط نه ساقطیږي.

تشریح:- دلیل دا دې چې خیارشرط د مبیع آزمولو (معلومولو) لپاره مشروع شوې دی.او یوځل سوریدل د آزمانش لپاره کافي وو.ځکه چې آزمانش هغه وخت کیدلې شي.چه کله مبیع باندې کار اوکړې شي.نود یوځل سوریدلو په وجه به د مشتري خیارشرط نه ساقطیږي.

## کوم سوریدل رضامندي نه ده؟

وَإِنْ رَكِبَهَا اوکه په دې څاروی ددې لپاره سور شو لِيَرُدَّهَا عَلَى بَائِعِهَا چې دا بوځي.او بائع ته ئې واپس کړي أَوْ لِيَسْقِيَهَا أَوْ لِيَشْتَرِيَ یا دې ته اوبه ورکړي لَهَا عَلَفًا یا ددې لپاره ونده واخلي...او راوړي فَلَيْسَ بِرِضًا نودا په عیب باندې رضامندي نه ده.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوکس د سوارلۍ حیوان (څاروې) واخستلو.بیا مشتري دا بائع ته د واپس کاوه دپاره، یا سوارلۍ ته د اوبو ور کاوه لپاره په دې باندې سور شو.یا دې لپاره سورشو.چه دده د خوراك لپاره ګیا واخلي.او په دې ئې بار کړي.او راوئیړي.نو په دې وجهو سره سوریدلو ته د مشتري رضامندي نشي وئیلې.علامه مرغیناني رحمه الله فرماني.که مشتري د وا روسته کاوه لپاره په دې باندې سورشوې دې.نودا سوریدل به مطلقا د مشتري رضامندي نه وي.که مشتري لپاره د سوریدلو نه بغیر څه ذریعه وي.او که نه وي.

أَمَّا الرُّكُوبُ لِلرَّدِّ بهرحال د واپس کاوه لپاره سوریدل فَلِأَنَّهُ سَبَبُ الرَّدِّ خو پخپله د واپس کاوه سبب دې.



تشریح:- دلیل دا دې چې د واپس کاوه لپاره په څاروی باندې سوریدل د واپسۍ سبب دې.اود شئ سبب د شئ لپاره مقتضي وي.او شئ مستحکم کوي.نودا سوریدل د واپسۍ تائید دې.د رضامندۍ علامت نه دې.په دې وجه ددې مقصد لپاره سوریدل د مشتري رضامندي نشي ګرځولې.

وَالْجَوَابُ فِي السَّقْيِ وَاشْتِرَاءِ الْعَلَفِ مَحْمُولٌ اود اوبو ور کاوه یا ونده اخستلو لپاره سوریدلوکې حکم په دې صورت باندې محمول دې عَلَى مَا إِذَا كَانَ لَا يَجِدُ بُدًّا مِنْهُ، چې مشتري کله ددې نه خلاصې نه بیامومي إِمَّا لِصُعُوبَتِهَا أَوْ لِعَجْزِهِ نو ددې څاروی د تکلیف په وجه یا دده د عاجزکیدلو په وجه أَوْ لِكَوْنِ الْعَلَفِ فِي عِدْلٍ وَاحِدٍ یا ځکه چې ونده په یو ګاټړې (پنډ) کې وه.

حل اللغة: ① یسقي،اوبه ورکوي، ② علف،ګیاه، ③ عدل،پنډ، ④ صعوبة،ګران والې

تشریح:- اود اوبو ور کاوه لپاره سوریدل،یا د ګیا اخستلو او راوړلو لپاره سوریدل به هغه وخت عدم رضا شمارلې کیږي.چه کله په سوریدلو باندې مجبورشي.ددې نه بغیرڅه بل صورت ممکن نه وي.مثلا حیوان (څاروې) سرکښه او وران وي.د سوریدلو نه بغیر دا په قابوکې نشي راوستلې کیدلې.یا مشتري د ډیرې کمزورۍ او بوډها توب په وجه د پیدل تللو نه عاجز وي.یا د ګیا یوګیډې وي.چه دا د کیجاوې یو اړخ کې ایخودلې شوې وي.بیا د توازن برقرار ساتلو لپاره په دوهم اړخ کې پخپله کیناستلو.په دې صورتونوکې د سوریدلو نه بغیر هیڅ ص...... نه دې وجه دې صورتونوکې به د مشتري سوریدل،دده د رضامندۍ دلیل نه وي.

وَأَمَّا إِذَا كَانَ يَجِدُ بُدًّا مِنْهُ اوکه د مشتري لپاره د سوریدلو نه څه خلاصې وي لِانْعِدَامِ مَا ذَكَرْنَاهُ د ذکرشوی څیزونو د معدوم کیدلو په وجه، يَكُونُ رِضًا نو سوریدل به رضامندي وي.

تشریح:- اوکه د مشتري لپاره د نه سوریدلو ګنجائش راوځي.مثلا په ذکرشوی صورتونوکې هیڅ خبره نه وي.نود مشتري سوریدل به دده رضامندي شمارلې کیږي.

## د مشتري په قبضه کښې د غل غلام نه لاس کټ کیدل

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا اوکه یوکس داسې غلام واخستلو قَدْ سَرَقَ چې ده غلا کړې ده وَلَمْ يَعْلَمْ بِهِ حالانکه مشتري ته معلوم نه ده فَقُطِعَ عِنْدَ الْمُشْتَرِي بیا مشتري سره دده لاس کټ کړې شو لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ وَيَأْخُذَ الثَّمَنَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (1) نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مشتري ته اختیار دې.چه دې غلام واپس کړي.پوره ثمن واخلي.

حل اللغة: ① سرق،غلا کړې، ② قطع،لاس کټ شو، ③ یاخذ،اخلي، ④ الثمن،پیسې

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوکس داسې غلام واخستلو.چه ده د بائع سره د اوسیدلو په حالت کې غلا کړې وي.اومشتري ته ددې علم نه د اخستلو په وخت وي.اونه د قبضه کاوه په وخت اوشو.بیا ددې غلام لاس د مشتري په قبضه کې کټ کړې شو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزمشتري ته اختیار شته.که غواړي نودا مقطوع الید غلام دې واپس کړي.اود بائع نه دې خپل پوره ثمن واپس واخلي.او که غواړي.نودا لاس کټ شوې غلام دې خان سره اوساتي.اود بائع نه دې نیم ثمن واخلي.ځکه چې د سړي یولاس د نیم ثمن برابر وي.

وَقَالَا او صاحبین رحمهما الله فرمايي يَرْجِعُ بِمَا بَيْنَ قِيمَتِهِ سَارِقًا إِلَى غَيْرِ سَارِقٍ چې د غل غلام اود غیرغل غلام په قیمت کې چې کوم توپیر دې.هغه واخلي.

تشریح:- صاحبین رحمهما الله فرماني.چه د غل اود غیرغل په قیمتونوکې چې کوم تفاوت وي.هغه دې واخلي.مثلا د غل قیمت زر روپۍ دې.اود غیرغل قیمت پنځه سوه روپۍ دې.نومشتري به د بائع نه پنځه سوه روپۍ واپس اخلي.اودا به ګڼړلې شي.چه د غلا کاوه په وجه پنځه سوه روپۍ قیمت کم شوې دې.

(1) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(۶\۳۵۱) وردالمحتار(۴\۱۰۶) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۳)-

وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ او هم په دې اختلاف باندې دادی إِذَا قُتِلَ بِسَبَبٍ چې غلام د داسې سبب په وجه قتل کړې شي وُجِدَ فِي يَدِ الْبَائِعِ کوم چې د بائع په قبضه کې موجود شوې دې.

تشریح:- د امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله په مینځ کې هم دا اختلاف هغه وخت دې. چه کله غلام د مشتری په قبضه کې په داسې سبب سره قتل کړې شو. کوم سبب چې د بائع په قبضه کې موجود وو. مثلاً دا غلام چې کله د بائع سره اوسیدلو. نو په دې حالت کې ده څوك عمداً قتل کړی وو. یا مرتد شوې وو. بیا په قصاص کې یا د مرتد کیدلو په وجه دا غلام د مشتری په قبضه کې قتل کړې شو. نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به مشتری د بائع نه پوره ثمن واپس اخلی. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به د داسې غلام قیمت معلومولې شی. چه هغه واجب القتل او مباح الدم وی. او د داسې غلام قیمت به معلومولې شی. چه واجب القتل نه وی. بلکه معصوم الدم وی. د دې دواړو په مینځ کې چې د قیمت کوم تفاوت راځی. مشتری دا د بائع نه واپس اخستلې شی. مثلاً د مباح الدم او واجب القتل غلام قیمت دوې (دوه) سوه روپۍ وی. او د معصوم الدم او غیرواجب القتل غلام قیمت زر روپۍ وی. نو مشتری به د خپل بائع نه اته سوه روپۍ واپس اخلی.

وَالْحَاصِلُ او د دې اختلاف حاصل دادې أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْاِسْتِحْقَاقِ عِنْدَهُ چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا عیب په منزله د استحقاق دې وَبِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ عِنْدَهُمَا او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د عیب په مرتبه کې دې.

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی. چه د دې اختلاف حاصل دادې. چه د غلام مباح الدم او مباح الید کیدل، د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په منزله د استحقاق دی. او د مستحق ښکاره کیدلو نه روسته چونکه مشتری ته د پوره ثمن اخستلو اجازت وی. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز په منزله د عیب دی. او که مبیع عیب دار وی. او دده واپس کول متعذر شو. نو مشتری ته د بائع نه د نقصان عیب اخستلو اختیار وی. او دلته کې د غلام مباح الید یا مباح الدم کیدل عیب دی. او د دې واپسی متعذر کیدل د قتل په صورت کې ښکاره دی. ځکه چې کله د قصاص یا مرتد کیدلو په وجه غلام د مشتری سره قتل کړې شو. نو دده واپس کول متعذر او ناممکن شو. او د قطع ید په صورت کې ځکه چې د غلام لاس د مشتری په قبضه کې کټ شوې دې. حالانکه د دې وجوب د د مشتری په قبضه کې نه وو شوې. نو د لاس کټ کیدل داسې شو. لکه چې د مشتری سره څه عیب جدید پیدا شوی وی. او مشتری سره د عیب جدید پیدا کیدل، د تیرشوی عیب په وجه مشتری لپاره مانع وی. نو هر کله چې د غلام واپس کول متعذر شو. حالانکه غلام د بائع د اړخه عیب دار راغلې دې. نو مشتری سره چې کوم تفاوت راځی. دا به د بائع نه واپس اخلی.

لَهُمَا او د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّ الْمَوْجُوْدَ فِي يَدِ الْبَائِعِ سَبَبُ الْقَطْعِ وَالْقَتْلِ چې بائع سره د لاس کټ کیدلو یا قتلولو سبب موجود دې وَأَنَّهُ لَا يُنَافِي الْمَالِيَّةَ او دا سبب د مالیت منافی نه دې فَنَفَذَ الْعَقْدُ فِيْهِ نو عقد بیع به په دې کې نافذ کولای شی لٰكِنَّهُ مُتَعَيِّبٌ خو د عیب دار دې فَيَرْجِعُ بِنُقْصَانِهِ عِنْدَ تَعَذُّرِ رَدِّهِ نو مشتری د مبیع واپس کاوه متعذر کیدلو په وخت د خپل بائع نه نقصان عیب واپس اخلی.

حل اللغة: ① القطع، کټ کیدل، ② ینافی، منافی، ③ نفذ، نافذ وی، ④ متعیب، عیب دار

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې. چه بائع سره د لاس کټ کولو، یا د قتل کیدلو سبب موجود وو. او په دې سبب سره دا نه لازمیږی. چه د غلام مالیت پاتې نشی. ځکه چې دده بیع جائز ده. نو عقد به هم نافذ کیږی. خو دا غلام د مباح الید یا د مباح الدم کیدلو په وجه عیب دار دې. او د مشتری لپاره د دې عیب دار غلام واپس کول متعذر شوی دی. لکه څنګه چې د مسئلې په وضاحت کې تیرشوی دی. او په کوم صورت کې چې مبیع عیب دار وی. او د دې واپس کول متعذر وی. او د دې واپس کول متعذر وی. نو مشتری ته نقصان واپس اخستلو اجازت وی. په دې وجه په دې صورت کې هم ده ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار وی. او دا داسې ده.

وَصَارَ او دا داسې شوه كَمَا إِذَا اشْتَرَى جَارِيَةً حَامِلًا لکه (مثلاً) که یو کس حامله وینځه واخستله فَمَاتَتْ فِي يَدِهِ بِالْوِلَادَةِ بیا



د ولادت په وجه د مشتری په قبضه کې مړه شوه فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِفَضْلِ نو مشتری به هغه زیاتی قیمت واپس اخلی مَا بَيْنَ قِيْمَتِهَا حَامِلًا إِلٰى غَيْرِ کوم چې د حامله او غیرحامله قیمتونو په منځ کې دې.

حل اللغة: ① جاریة، وینځه، ② حامل، حمل داره، ③ ماتت، مړه شوه، ④ فضل، زیاتی

تشریح:- لکه مثلاً یو کس حالمه وینځه واخستله او دده ته د حمل علم نه د اخستلو په وخت او نشو او نه د قبضه کاوه په وخت او شو. بیا دا د ولادت په وجه د مشتری په قبضه کې مړه شوه. نو مشتری به د حامله وینځې او د غیرحامله وینځې د قیمت اندازه اوکړی. د دواړو د قیمت په مینځ کې چې کوم توپیر وی. هغه به واپس اخلی. دې ته نقصان عیب وائی. نو هم دغه ډول به مشتری په ذکرشوې مسئله کې د بائع نه نقصان عیب واپس اخلی.

وَلَهُ او د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې أَنَّ سَبَبَ الْوُجُوْبِ فِي يَدِ الْبَائِعِ چې د سزا د وجوب سبب بائع سره اوموندې شو وَالْوُجُوْبُ يُفْضِي إِلَى الْوُجُوْدِ او وجوب مفضی الی الوجود وی فَيَكُوْنُ الْوُجُوْدُ مُضَافًا إِلَى السَّبَبِ السَّابِقِ په دې وجه به وجود مخکنی سبب اړخ ته منسوب کیږی.

حل اللغة: ① ید، لاس\قبضه، ② یفضی، مفضی کیږی، ③ السابق، مخکنی، ④ الوجود، موجود والې

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چه د غلام د لاس کټ کیدلو، یا دده د قتلیدلو سبب د بائع په قبضه کې موجود شوې دې. او د وجوب سبب مفضی الی الوجوب وی. نو ګویا لاس کټ کیدل، یا قتل کیدل د بائع سره واجب شوی وو. او وجوب مفضی الی الوجود وی. نو ګویا د غلام لاس کټ کیدل، یا دده قتلیدل، د تیرشوی سبب په وجه د بائع په قبضه کې موجود شوی دی. نو هر کله چې د لاس کټ کیدل، یا د غلام قتلیدل، د هغه سبب په وجه موجود شو. کوم چې د بائع په قبضه کې موجود وو. نو دا غلام د مستحق پشان شو. یعنی دا غلام د سره بائع نه وو. بلکه په ده باندې د بل چا استحقاق وو. چه دا اوس ښکاره شو. او مستحق ته عقد بیع ګټ نه وی. او هر کله چې مستحق ته عقد بیع نه شاملیږی. نو د بل کس نه د مشتری قبضه هم اونشوه. او هر کله چې د مشتری قبضه ثابت نشوه. نو دې به خپل ورکړې شوې ثمن د بائع نه واپس اخلی. او د لاس پرې کول په صورت کې چونکه نیم غلام مستحق شوې دې. په دې وجه به مشتری نیم ثمن واپس اخلی. یا به مقطوع الیه غلام واپس کوی. او پوره ثمن به واپس اخلی.

وَصَارَ او دا داسې شوه كَمَا إِذَا قُتِلَ الْمَغْصُوْبُ لکه چې کله غاصب د واپس کاوه نه روسته مغصوب غلام د داسې جرم په وجه قتل کړې شو أَوْ قُطِعَ بَعْدَ الرَّدِّ بِجِنَايَةٍ وُجِدَتْ فِي يَدِ الْغَاصِبِ یا دده لاس کټ کړې شو. کوم چې د غاصب په قبض کې موجود شوې وو.

حل اللغة: ① صار، او ګرځیدو، ② المغصوب، غصب شوې، ③ جنایة، ګناه، ید، قبضه

تشریح:- د دې مثال داسې دې. لکه چې غاصب سره غلام داسې حرکت اوکړلو. چه په دې سره دده لاس کټ کیدل یا قتل کیدل لازمیږی. خو غاصب چې د کوم کس نه غصب کړې وو. هغه ته ئې واپس کړلو. او دلته کې دده لاس کټ کړې شو. یا قتل کړې شو. نو مغصوب منه (یعنی مالك د کوم کس نه چې غلام غصب شوی دې) د غاصب نه د غلام پوره قیمت اخلی. او د لاس کټ کاوه په صورت کې مالك د غاصب نه نیم قیمت اخلی. یا لاس کټ شوې غلام واپس کوی. پوره قیمت دده نه وصول کوی. د غه ډول په ذکر شوې مسئله کښې هم که غلام د مشتری په قبضه کې د قصاص یا د مرتد کیدلو په وجه قتل کړې شو. نو مشتری د بائع نه پوره ثمن اخلی. او که دده لاس کټ کړې شو. نو مشتری د بائع نه نیم ثمن اخلی. یا به دا واپس کوی. او پوره ثمن به اخلی.

وَمَا ذُكِرَ مِنَ الْمَسْأَلَةِ مَمْنُوْعٌ او ذکرشوې مسئله نه منلې کیږی.

تشریح:- او د حامله وینځې په حق کې چې کوم حکم ذکرشوې دې. دا د صاحبینو رحمهما الله مذهب دې. ګنی د اما
ابوحنیفه رحمه الله په نیز حکم دادې. چه کله حامله وینځه د ولادت په وجه مړه شی. نو مشتری به د بائع نه پوره ثم
اخلی. او هر کله چې د امام صاحب رحمه الله مذهب دادې. نو د حامله وینځې مسئله د امام صاحب رحمه الله خلاف د قیاس په

طور پیش کول څنګه درست کېدلې شي.

### په زړه او نوې غلاکېنې د مشتري نه لاس کټ کېدل

وَلَوْسُرِقَ فِي يَدِ الْبَائِعِ لکه چې کله غاصب د واپس کاوه نه روسته مغصوب غلام د داسې جرم په وجه قتل کړې شو ثُمَّ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي بیا ئې مشتري سره غلا اوکړله. فَقُطِعَ بِهِمَا بیا د دواړو غلاګانو په وجه دده لاس کټ کړې شو.

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې چه مبیع غلام یوځل د بائع سره د اوسیدلو په حالت کښې غلا اوکړله. او یوځل چې کله د مشتري په قبضه کې راغی، نو غلا ئې اوکړله. بیا د دواړو غلاګانو په وجه دده لاس کټ کړې شو.

عِنْدَهُمَا يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ د صاحبینو رحمهما الله په نیز به نقصان عیب واپس اخلي كَمَا ذَكَرْنَا لکه څنګه چې موږ ذکر کړې دی.

**تشریح:**- نود صاحبینو رحمهما الله په نیز به مشتري د بائع نه دهغه عیب نقصان واپس اخلي. کوم چې د بائع سره د اوسیدلو په حالت کې د غلا په وجه پیدا شوې وو. یعنی د غل اود غیرغل په قیمتونوکي چې کوم تفاوت ښکاره شي. مشتري به هم دا د بائع نه واپس اخلي. لکه څنګه چې وړاندې په تفصیل سره تیرشوی دی.

وَعِنْدَهُ لَا يَرُدُّهُ بِدُوْنِ رِضَا الْبَائِعِ لِلْعَيْبِ الْحَادِثِ اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د نوی عیب پیدا کېدلو په وجه د بائع د رضامندئ نه بغیر دا نشی واپس کولې وَيَرْجِعُ بِرُبُعِ الثَّمَنِ [1] او څلورمه برخه ثمن به واپس اخلي.

**حل اللغة:** ① دون، بغیر. ② الحادث، نوې پیدا. ③ ربع، څلورمه حصه. ④ الثمن، پیسې

**تشریح:**- اود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مشتري لاس کټ شوې غلام، د بائع د رضامندئ نه بغیر نشي واپس کولې. ځکه چې مشتري سره په دې غلام کې یو نوې عیب پیدا شوې دې. یعنی د غلام مشتري سره غلا کول. اود دواړو غلاګانو په وجه لاس کټ کېدل. اودا خبره وړاندې تیره شوې ده. که مشتري سره په مبیع کې څه نوې عیب پیدا شو. نو مشتري ته د مبیع واپس کاوه اختیار نه پاتې کیږي. په دې وجه په دې صورت کې هم مشتري ته د مقطوع الید غلام واپس کاوه اختیار نه وي. البته مشتري به د ثمن څلورمه برخه د بائع نه واپس اخلي. ځکه چې د غلام لاس د دوې (دوه) غلاګانو په وجه کټ شوې دې. یوه هغه غلا کومه ئې چې بائع سره کړې ده. او یوه هغه کومه ئې چې د مشتري سره کړې ده. اودا خبره فیصله شوې ده. چه مشتري د هغه عیب نقصان د بائع نه اخستلې شي. کوم عیب چې بائع سره پیدا شوې وي. دهغه عیب نقصان نشي اخستلې. کوم چې پخپله د مشتري په قبضه کې پیدا شوې وي. نو هرکله چې د غلام لاس د دواړه غلاګانو په وجه کټ شوې دې. نو مشتري ته به هم هغه اومره ثمن واپس اخستلو اختیار وي. کوم چې د یو لاس د نیم په مقابله کې راځي. اود یو لاس په قیمت کې چونکه نصف ثمن راځي په دې وجه به د نیم لاس په مقابل کې د ثمن څلورمه برخه راځي. نو مشتري ته به د هغه غلا په وجه، کوم چې غلام د بائع سره کړې ده. د څلورمې برخې (حصې) واپس اخستلو حق وي.

وَإِنْ قَبِلَهُ الْبَائِعُ او که بائع لاس کټ شوې غلام قبول کړو فَبِثَلَاثَةِ الْأَرْبَاعِ نو مشتري به په څلوروکې د درې برخو ثمن واپس اخلي.

**حل اللغة:** ① ثلاثة الارباع، څلورمه حصه. ② نصف، نیم. ③ تلفت، هلاک شو. ④ الرجوع، واپس اخستل

**تشریح:**- اوکه بائع لاس کټ شوې غلام واپس اخستل اوغوښتل. نو په دې صورت کې به مشتري ته د بائع نه د ثمن په څلورو برخو کې د درېو برخو واپس اخستلو اختیار وي.

لِأَنَّ الْيَدَ مِنَ الْآدَمِيِّ نِصْفُهُ ځکه چې د سړي لاس دده نیمه وي وَقَدْ تَلِفَتْ بِالْجِنَايَتَيْنِ اودا د دوې (دوه) جرمونو په وجه

[1]) القول الراجح هو هذا قول الإمام أبي حنيفة رحمه الله وقد مر بيانه نقلاً عن القول الراجح(٣٤١٢)-



تلف شو وَفِي أَحَدِهِمَا رُجُوْعٌ او په دې دواړوکې یوکې (مشتري ته د نقصان) واپس اخستلو حق دې فَيَتَنَصَّفُ نو ددې نیم به) دوې (دوه) ټکړې کیږي.

**تشریح:**- دلیل دا دې چې د سړي لاس نصف شمارلې کیږي. حالانکه د غلام لاس د دوې (دوه) غلاګانو په وجه کټ شوې دې. او مشتري ته په دې دواړوکې په یوکې د نقصان عیب اخستلو حق دې نو ددې نصف به دوې (دوه) برخې (حصې) شي. اود نصف نیمه برخه (د کل) څلورمه برخه وي. نوکه نقصان عیب اخستل ئې قبول کړل نو مشتري به د بائع نه د ثمن په څلورو برخو کې درې برخې (حصې) اخلي ځکه چې د څلورمې برخې (حصې) ثمن د هغه غلا په وجه ساقط شوې دې. کومه غلا چې غلام پخپله مشتري سره کړې ده.

### په ډېرو اخستونکو کښې د آخرې مشتري سره د غل غلام لاس کټ کېدل

وَلَوْتَدَاوَلَتْهُ الْأَيْدِي اوکه دا غلاکونکې غلام د ډېرو اخستونکو په لاسونوکښې خرڅ شو ثُمَّ قُطِعَ فِي يَدِ الْأَخِيْرِ بیا د آخري مشتري په قبضه کې دده لاس کټ کړې شو رَجَعَ الْبَاعَةُ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ عِنْدَهُ [1] نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به هریو مشتري د خپل بائع نه ثمن واپس اخلي. كَمَا فِي الْاِسْتِحْقَاقِ لکه څنګه چې د استحقاق په صورت کې کیږي.

**حل اللغة:** ① تداول، اخستل ورکول ② الایدی، جمع د ید، مراد سوداګران. ③ رجع، اخلي به. الباعة، اغستونکي

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې چه غلام خپل مالك سره د اوسیدلو په حالت کښې غلا اوکړله. بیا دا غلام حامد واخستلو. اود حامد نه شاکر واخستلو. اود شاکر نه زاهد واخستلو. بیاد آخري مشتري یعنی د زاهد په قبضه کې دې غلام لاس د هغه غلا په وجه کټ کړې شو. کومه چې ده د رومبي مالك یعنی د اول بائع سره کړې وه. نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دادې. چه هرمشتري به مقطوع الید غلام واپس کوی. اود خپل بائع څخه به پوره ثمن واپس اخلي. او یا به مقطوع الید غلام خپل ځان سره اوساتي. اود خپل بائع څخه به نیم ثمن واپس اخلي. یعنی زاهد به د شاکر نه اخلي. او شاکر به دحامد نه اخلي. او حامد به د خپل وړاندې مالك نه اخلي. د کوم په قبضه کې چې غلام غلا کړې وه. ځکه چې دحضرت امام صاحب رحمه الله په نیز د غلام لاس کټ کېدل، د استحقاق په مرتبه کې دی. اود استحقاق حکم دادې. که آخري مشتري سره غلام مستحق شو. نو هرمشتري د خپل بائع نه ثمن واپس اخلي. نو هم دغه ډول د لاس کټ کاوه په صورت کې هر مشتري د خپل بائع نه ثمن واپس اخلي.

وَعِنْدَهُمَا يَرْجِعُ الْأَخِيْرُ عَلَى بَائِعِهِ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به آخري مشتري د خپل بائع نه واپس اخلي. وَلَا يَرْجِعُ بَائِعُهُ عَلَى بَائِعِهِ او دده بائع د خپل بائع نه واپس نشي اخستلې. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ ځکه چې دا د عیب په مرتبه کې دی. وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ وَلَمْ يَعْلَمِ الْمُشْتَرِي ود ماتن قول په کتاب کې ﴿ولم يعلم المشترى﴾ يُفِيْدُ عَلَى مَذْهَبِهِمَا د صاحبینو رحمهما الله په مذهب باندې مفید دې.

**تشریح:**- اود صاحبینو رحمهما الله مذهب دادې. چه آخري مشتري یعنی زاهد خود خپل بائع یعنی شاکر نه نقصان عیب واپس اخستلې شي. خو شاکر د خپل بائع یعنی حامد نه نقصان عیب نشي اخستلې. ځکه چې لاس کټ کېدل، د صاحبینو رحمهما الله په نیز د عیب په مرتبه کې دی. او وړاندې دا قاعده تیره شوې ده. که مشتري حابس للمبیع وي. نو ده ته د نقصان عیب واپس اخستلو اختیار نه وي. که ده ته په مبیع کې د پیدا شوی عیب علم وي. او که نه وي. او که مشتري حابس للمبیع نه وي. او مبیع واپس کول هم متعذر نه وي. نودې د عیب په وجه مبیع واپس کولې شي. او که د عیب جدید په وجه مبیع واپس کول متعذر شوې وي. نو مشتري به د نقصان عیب واپس اخستلو اجازت نه وي. نو آخري مشتري یعنی زاهد چونکه دا غلام خرڅ کړې نه دې. په دې وجه دې حابس للمبیع نشو. اود غلام

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٦\٣٨) وردالمحتار(١٤\١٠٦) نقلاً عن القول الراجح(٢\٣٥)-

لاس،چونکه د آخري مشتري په قبضه کي کښ شوي دي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د لاس کښ کيدل عيب حادث دي.چه ددي په وجه د مبيع واپس کول متعذر شوي دی.په دي وجه آخري مشتري د خپل بائع نه نقصان عيب واپس اخستلي شي.او آخري مشتري يعنی د زاهد بائع يعنی شاکر چونکه دا غلام خرڅ کړي دي.په دي وجه شاکر اودده بائع يعنی حامد دواړه حابس للمبيع شو.او حابس للمبيع ته چونکه د خپل بائع نه د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار نه وي.په دي وجه د آخري مشتري بائع د خپل بائع نه،او هغه د خپل بائع يعنی حامد نه،د نقصان عيب واپس اخستلو اجازت نشته.

لِأَنَّ الْعِلْمَ بِالْعَيْبِ خکه چي په عيب باندي خبريدل رِضًا بِهِ، عيب باندي رضامندي وی وَلَا يُفِيدُ عَلَى قَوْلِهِ فِي الصَّحِيحِ اود صحيح قول مطابق د امام صاحب رحمه الله په قول باندي مفيد نه وی لِأَنَّ الْعِلْمَ بِالِاسْتِحْقَاقِ لَا يَمْنَعُ الرُّجُوعَ خکه چي د استحقاق نه خبريدل ثمن واپس اخستل نه منع کوی.

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه په متن يعنی په جامع صغير کي د امام محمد رحمه الله قول «ولم يعلم المشتري»،، يعنی د غلام غل کيدل،مشتري ته نه د بيع په وخت معلوم وی.اونه د قبضه په وخت معلوم شوی وی،، د صاحبينو رحمهما الله په قول باندي خو مفيد دی.خود امام صاحب رحمه الله په صحيح قول باندي مفيد نه دی.خکه چي د صاحبينو رحمهما الله په نيز د غلا په وجه د لاس کښ کاوه وجوب دعيب په منزله کي دی.اود مشتري د اخستلو په وخت،يا د قبضه کاوه په وخت په مبيع کي په عيب خبريدل،د مشتري په عيب باندي رضامندي شمارلي کيږي.اود مبيع په عيب باندي د مشتري رضامندي دده خيار عيب ساقطوی.په دي وجه د خيارعيب پاته کيدلو لپاره د مشتري رضامندي ددي خيارعيب ساقطوی.په دي وجه د خيارعيب پاته ساتلو لپاره د مشتري د عيب نه نه خبريدل ضروري دی.اود امام صاحب رحمه الله په نيز چونکه د سرقه په وجه لاس کښ کول، د استحقاق په منزله کي دی.او مشتري ته که د مبيع مستحق کيدلو علم اوشی.نودا علم رجوع بالنقصان نه نه منع کوی.په دي وجه د «ولم يعلم به» قيد د امام صاحب رحمه الله په قول باندي نه مفيد کيږي. يعنی د امام صاحب رحمه الله په نيز د مشتري د غلا علم وی.او که نه وی.په دواړو صورتونو کي به ده ته د رجوع بالنقصان حق حاصل وی.

### په دي شرط باندي غلام خرخول چي زه د هرځه نه بري يم

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا فرمائی.او چاچه غلام خرڅ کړو وَشَرَطَ الْبَرَاءَةَ مِنْ كُلِّ عَيْبٍ اود هرعيب نه ني د بری کيدلو شرط اوکړو فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ بِعَيْبٍ نومشتري ته به دعيب په وجه د مبيع واپس کاوه حق نه وی وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ الْعُيُوبَ بِعَدَدِهَا اګرچه ده عيبونه په نوم سره (جلا جدا) ذکر کړي نه وی.

**حل اللغة:** ① البراءة،بری کيدل، ② عيب،نقصان، ③ عدد،شمار، ④ يسم،نامدار کول

**تشريح:-** صورت د مسئلي دادي.که يوکس غلام خرڅ کړلو.اود هرعيب نه ني د بری کيدلو شرط اولګولو.يعنی بائع اووئيل چه زه د غلام د هرعيب نه بری يم.مشتري دا شرط منظور کړلو.نواوس به مشتري ته د هيڅ يو عيب په وجه د غلام واپس کاوه حق نه وی.که دا عيبونه ني جلا جلا په نوم سره شمارلي وی.او که نه وی شمارلي.او بائع ته ددي عيبونو علم وی.او که نه وی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دی لَا يَصِحُّ الْبَرَاءَةُ چي براءت صحيح نه دي بِنَاءً عَلَى مَذْهَبِهِ أَنَّ الْإِبْرَاءَ عَنِ الْحُقُوقِ الْمَجْهُولَةِ لَا يَصِحُّ ددوی په مذهب باندي په بناء کاوه سره،چه د مجهول حق نه بری کول جائز نه دی.

**تشريح:-** امام شافعي رحمه الله فرمائی.چه دا براءت صحيح نه دي.يعنی د هر عيب نه د بری کيدلو په شرط سره بيع فاسد ده.اود امام شافعي رحمه الله نه يو روايت دادي.چه په دي صورت کي بيع صحيح ده.خو شرط باطل دي.

هُوَ يَقُولُ: دوی فرمايي اِنَّ فِي الْإِبْرَاءِ مَعْنَى التَّمْلِيكِ چي په بری کاوه کي د مالک کاوه معنی ده حَتَّى يَرْتَدَّ بِالرَّدِّ تردي چي دا په رد کاوه سره رد کيږي وَتَمْلِيكُ الْمَجْهُولِ لَا يَصِحُّ اود مجهول شئ مالک کول صحيح نه دی.



**تشريح:-** د امام شافعي رحمه الله د قول بنا (بنياد) په دي مذهب باندي دي.چه د مجهول (نامعلوم) حقونو نه بری کول صحيح نه دی.خکه چي په بری کولوکي دتمليک معنی موندلي شي.هم دا وجه ده.که پور غوښتونکي خپل پور داری د پور نه بری کړلو.خو قرضداری دا رد کړلو.نو دده په رد کاوه سره به ردکيږي.يعنی د قرضداری د رد کاوه نه روسته ابراء (بری کيدل) صحيح نه دی.او په رد کاوه سره ردکيدل،د تمليک د قبيلي علامت دي.نو معلومه شوه.چه بری کول د تمليکاتو د قبيلي خني دی.او مجهول شئ تمليک چونکه صحيح نه دی.په دي وجه به د مجهول عيبونو بری کول صحيح نه وی.

وَلَنَا او زموږ دليل دادي أَنَّ الْجَهَالَةَ فِي الْإِسْقَاطِ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ چي په ساقط کولوکي جهالت مفضی الی المنازعه نه دي.

**حل اللغة:** ① الاسقاط،ساقطول ② ،المنازعة،جګړه، ③ تمليک،مالک جوړول، ④ التسليم،سپارل

**تشريح:-** زموږ دليل دادي.چه بری کول د اسقاط د قبيلي خني دی.د تمليک د قبيلي خني نه دی.خکه چي لفظ د،،ابراء،، سره تمليک عين ټيک نه دي.نو هرکله چي په لفظ د ابراء سره د عين شئ مالک کيدل ټيک نه دی.نو معلومه شوه.چه ابراء تمليک نه دي.بلکه اسقاط دي.او په جهالت د اسقاط کي مفضی الی المنازعه نه وی.خکه چي جهالت هغه وخت،،مفضی الی المنازعه،، وی.چه کله د څه شئ سپارلو اړتيا وی.او په اسقاطاتو کي چونکه د سپارلو اړتيا نه وی.په دي وجه په اسقاطاتو کي جهالت،،مفضی الی المنازعه،، هم نه وی.او هرکله چي په اسقاطاتو کي جهالت،،مفضی الی المنازعه،، نه دي.نودا به مفسد د بيع هم نه وی.په دي وجه موږ اووئيل چه د مجهول عيبونو نه بری کول ټيک دی.

وَإِنْ كَانَ فِي ضِمْنِهِ التَّمْلِيكُ اګرچه ددي په ضمن کي مالک کول لازميږي لِعَدَمِ الْحَاجَةِ إِلَى التَّسْلِيمِ خکه چي د سپارلو اړتيا نه وی فَلَا تَكُونُ مُفْسِدَةً نو داسي جهالت به مفسد نه وی.

**تشريح:-** په دي عبارت کي د امام شافعي رحمه الله د دليل «حتي يرتد بالرد...» ځواب دي.حاصل د ځواب دادي.چه ابراء اګرچه اسقاط دي.خو ددي په ضمن کي تمليک دي.نو چونکه ضمناً د تمليک معنی موندلي کيږي.په دي وجه ابراء په رد کاوه سره ردکيږي.

وَيَدْخُلُ فِي هَذِهِ الْبَرَاءَةِ الْعَيْبُ الْمَوْجُودُ او په دي براءت کي به هرهغه عيب داخل وی.کوم چي بالفعل موجود وی وَالْحَادِثُ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ [1] اود ابويوسف رحمه الله د قول مطابق هغه عيب کوم چي د قبضه نه وړاندي پيدا شوي وی.

**حل اللغة:** ① يدخل،داخليږي، ② الحادث،نوي پيدا شوي، ③ تناول،شامليږي، ④ الثابتة،موجود

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه په دي براءت کي يعنی د بائع د هرعيب نه د براءت طلب کاوه په صورت کي به هغه عيب هم داخل وی.کوم چي دعقد بيع په وخت په مبيع کي موجود دي.او هغه عيب به هم داخل وی.کوم چي د عقدبيع نه روسته د قبضه کاوه نه وړاندي پيدا شوي وی.هم دا د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب اود امام ابويوسف رحمه الله يو روايت دي.او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه کوم عيب د عقدبيع نه روسته د قبضه کاوه نه وړاندي پيدا شي.هغه به په دي براءت کي داخل نه وی.يعنی ددي عيب په وجه به مشتري ته خيارعيب حاصل وی.هم دا دامام زفر،امام شافعي،اود امام مالک رحمه الله قول دي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ او امام محمد رحمه الله فرمايي لَا يَدْخُلُ فِيهِ الْحَادِثُ چي کوم د قبضه نه وړاندي پيدا شوي وی هغه به داخل نه

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في ردالمحتار(١٠٧\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٦\٢)-

وي وَهُوَقَوْلُ زُفَرَاود امام زفر رحمه الله قول هم دا دې أَنَّ الْبَرَاءَةَ تَتَنَاوَلُ الثَّابِتَ ځكه چې براءت داسې شئ ته ګډ دې، كوم چې ثابت وي.

**تشريح:**- د امام محمد رحمه الله دليل دادې چه براءت داسې شئ ته ګډ وي، كوم چې ثابت وي، او ثابت هغه عيب وي، كوم چې د بيع په وخت موجود وي، په دې وجه به براءت صرف هغه عيب ته ګډ وي، كوم چې دعقد بيع په وخت موجود وي، او كوم عيب چې د بيع نه روسته اود قبضه نه وړاندې پيدا شوې وي، هغې ته به ګډ نه وي.

وَلِأَبِي يُوسُفَ اود ابويوسف رحمه الله دليل دادې أَنَّ الْغَرَضَ اِلْزَامُ الْعَقْدِ بِإِسْقَاطِ حَقِّهِ عَنْ صِفَةِ السَّلَامَةِ چې دبراءت مقصود د سلامتيا په صفت سره مشترى نه خپل حق ساقطول، او بيع لازمول دى وَذٰلِكَ بِالْبَرَاءَةِ عَنِ الْمَوْجُودِ وَالْحَادِثِ اودا مقصود د موجود او حادث دواړه قسمه عيبونو نه د براءت په ذريعه حاصليږي.

**حل اللغة:** ① الغرض،مقصد، ② الاسقاط،ساقطول ③ ،الالزام،لازمول، ④ السلامة،بې عيبه كيدل

**تشريح:**- د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې چه ددې براءت مقصود داوي چه مشترى ته د كوم سالم مبيع حق دې، هغه ساقط كړي، او بيع لازم كړې شي، اودا مقصود به هغه وخت حاصليږي چه كله بائع د موجود اوحادث دواړه قسمه عيبونو نه برى وي، په دې وجه به په دې براءت كې عيب موجود، او عيب حادث دواړه ګډ وي.

## باب البيع الفاسد

ژباړه:- (دا) باب د بيع فاسد (په بيان كې) دې.

**تشريح:**- بيع په دوې (دوه) قسمه ده صحيح او غيرصحيح مصنف رحمه الله د اول ډول نه فارغ شو او اوس په په دوهم ډول كې پيل كوى. اوبيع صحيح چونكه اصل ده، په دې وجه ئې دا وړاندې، او بيع غيرصحيح روسته بيان كړې ده.

**تعريف البيع الباطل وحكمه:** د بيع غيرصحيح څلورقسمونه دى. ① بيع باطل، دا دذات او وصف دواړه اعتبارسره مشروع نه وي، لكه د معدوم بيع، يا د غيرمال مثلاً د مردار وغيره بيع شوه. دا بيع بالكل مفيد د ملك نه وي، نه د قبضه نه وړاندې، او نه د قبضه نه پس. كه يوكس د مردار په عوض باندې غلام واخستلو. او په ده ئې قبضه اوكړله او آزاد ئې كړلو، نو غلام به آزاد نه وي، ځكه چې د مردار بيع باطل ده.

**تعريف البيع الفاسد وحكمه** ② بيع فاسد، دا د ذات په اعتبار سره مشروع وي، خود وصف په اعتبار سره مشروع نه وي، لكه د غيرمقدورالتسليم بيع شوه، يعنى يو داسې شئ خرڅول چې ددې په سپارلو باندې قادر نه وي، لكه تختيدلي غلام يا د عقد دمقتضى خلاف شرط لګول. اومكره داده، چه د ذات او وصف دواړه اعتبار سره مشروع وي، خو فعل منهى عنه دې سره متصل شوې وي، لكه د جمعې د اذان نه روسته خرڅول. دا په قبضه كاوه سره مفيد د ملك وي. كه يوكس د شراب په عوض كې غلام واخستلو، او په ده ئې قبضه اوكړله، او دا ئې آزاد كړلو، نودا غلام به د مشترى د اړخه آزاد وي، او په ده به د غلام قيمت واجب وي، ځكه چې د شراب په عوض بيع فاسد وي.

**تعريف البيع الموقوف وحكمه** ③ بيع موقوف، او بيع موقوف داده، چه د ذات او وصف دواړه اعتبار سره ټيك وي، خو ددې نفاذ د عاقدينو نه علاوه د يو دريم كس په اجازت باندې موقوف وي، لكه د غلام بيع د مولا په اجازت باندې موقوف وي. دا بيع، ،موقوف على سبيل التوقف،، مفيد د ملك وي.

**تعريف البيع المكروه وحكمه** ④ بيع مكره دا هغه ده چې د اصل او وصف دواړو په اعتبار سره صحيح وي خو دې سره يومنهى عنه شئ انډيوالان شي نو دهغې په وجه په كې كراهت پيدا شي لكه د جمعې د اذان په وخت كې بيع كول، اودامفيد دملك ده، خو سره د كراهته.

**وجه تسمية الباب بالبيع الفاسد:** بيع فاسد د كثرت اسباب په وجه چونكه كثيرالوقوع ده، په دې وجه عنوان كې د فاسد لفظ ذكر كړې شو، اګرچه په دې كې د بيع باطل، بيع مكره، اود بيع موقوف احكام هم ذكر دى.



### د بيع باطليدلو يا فاسديدلو معيار

وَإِذَا كَانَ أَحَدُ الْعِوَضَيْنِ أَوْكِلَاهُمَا مُحَرَّمًا او كله چې يوعوض يا دواړه حرام وي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده كَالْبَيْعِ بِالْمَيْتَةِ لكه د مردار په عوض بيع، وَالدَّمِ يا د وينې په عوض وَالْخِنْزِيرِ، يا د شرابو په عوض وَالْخَمْرِ يا د خنزير په عوض وَكَذَا إِذَا كَانَ غَيْرَ مَمْلُوكٍ، او هم دغه شان چې كله غيرمملوك وي كَالْحُرِّ لكه آزاد سړې، قَالَ هٰذِهِ فُصُولٌ جَمَعَهَا، علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى چه قدورى رحمه الله دا صورت جمع كړې دې وَفِيهَا تَفْصِيلٌ نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى حالانكه په دې كې تفصيل دې چه دا موږ ان شاءالله بيانوو.

**حل اللغة:** ① الميتة،مرداره، ② الدم،وينه، ③ الخمر،شراب، ④ الحر،آزاد سړې

**تشريح:**- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائى چه مبيع يا ثمن يا دواړه كه شرعا حرام وي نو بيع فاسد ده، لكه مردار، يا وينه، يا شراب، يا خنزير، يا آزاد سړې ئې ثمن جوړ كړې وي. علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى چه امام ابوالحسن قدورى رحمه الله دا ټولو صورتونه بيع فاسد ګرځولى دى، حالانكه په دې كې بعض بيع فاسد دى او بعض باطل دى.

فَنَقُولُ الْبَيْعُ بِالْمَيْتَةِ وَالدَّمِ بَاطِلٌ نو موږ وايو چه د مردار يا وينې په عوض بيع باطل ده وَكَذَا بِالْحُرِّ اوهم دغه ډول د آزاد سړې په عوض باطل ده لِانْعِدَامِ رُكْنِ الْبَيْعِ ځكه چې د بيع ركن معدوم دې وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ، اود مال، مال سره مبادله ده فَإِنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ لَا تُعَدُّ مَالًا عِنْدَ أَحَدٍ ځكه چې دا شيان د هيڅ چا په نيز مال نه شمارلې كيږي.

**تشريح:**- تفصيل ددې دادې، كه مردار، يا وينه، يا آزاد سړې ئې ثمن جوړ كړلو او كيږې وغيره څه شئ ئې مبيع جوړ كړلو، نو په دې صورتونوكې به بيع باطل وي، ځكه چې د بيع ركن،، مبادلة المال بالمال بالتراضى،، دې او مردار وغيره ذكرشوى شيان د دين سماوى په منونكو كې دچا په نيز هم مال نه شمارلې كيږي، ځكه چې مال هغه وي، چه دې اړخ ته د انسان طبيعت مائل شي، اود ارتيا د وخت لپاره ددې ذخيره كول ممكن وي. نو چونكه مردار، او وينې اړخ ته نه طبيعت مائل كيږي، اونه دا ذخيره كولې شي، اوهم دغه ډول آزاد سړې هم ذخيره كولې نشي، په دې وجه به دا شيان مال نه وي، اوهركله چې دا شيان مال نشو نو،، مبادلة المال بالمال،، هم موجود نشو بلكه،، مبادلة المال بغيرالمال،، موجود شو، حالانكه،، مبادلة المال بالمال،، د بيع ركن دې نود بيع ركن معدوم شو. اود شئ ركن په معدوم كيدلوسره شئ باطليږي، په دې وجه ذكرشوى صورتونوكې بيع باطليږي.

وَالْبَيْعُ بِالْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ فَاسِدٌ او بيع دشراب اوخنزير په عوض فاسد ده. لِوُجُودِ حَقِيقَةِ الْبَيْعِ وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ ځكه چې د بيع حقيقت يعنى مبادلة المال بالمال موجود دې فَإِنَّهُ مَالٌ عِنْدَ الْبَعْضِ ځكه چې د بعض په نيز شراب او خنزير مال دې.

**تشريح:**- او كه شراب يا خنزير ثمن جوړ كړې شو، نو بيع به فاسد وي، ځكه چې شراب اوخنزيرد ذميانو په نيز مال شمارلې كيږي، نود،، مبادلة المال بالمال،، موندلو په وجه د بيع حقيقت اوموندې شو، خوچونكه مسلمان نه د شراب اوخنزير په سپارلو قادر دې، او نه ئې قبضه كاوه قادر دې، په دې وجه د،، غيرمقدور التسليم،، شئ ثمن جوړولو په وجه به بيع فاسد وي.

### بيع باطل دملك فائده وركوي اوكه نه؟

وَالْبَاطِلُ لَا يُفِيدُ مِلْكَ التَّصَرُّفِ او بيع باطل دملك تصرف فائده نه وركوي وَلَوْ هَلَكَ الْمَبِيعُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي فِيهِ او كه په بيع باطل كې دمشترى په قبضه كې مبيع هلاك شو يَكُونُ أَمَانَةً عِنْدَ بَعْضِ الْمَشَايِخِ نود بعض مشائخ په نيز به دا امانت وي.

**حل اللغة:** ① يفيد،پيدا كوى، ② المضمون،تاوان شوې، ③ الاذن،اجازت، ④ سوم،نرخ

**تشريح:**- په دې عبارت كې فرمايي چې بيع باطل نه د ملك تصرف فائده وركوى، او نه د ملك رقبه فائده وركوى، يعنى د بيع باطل په صورت كې مشترى نه د عين مبيع مالك كيږي، او نه په دې كې د تصرف مالك كيږي، اود بيع باطل په صورت كې مشترى نه د عين مبيع مالك كيږي، اونه په دې كې تصرف كولې شي، اود بيع

باطل په صورت کي که مبيع د مشتری د قبضه نه هلاك شو.نود بعض مشائخو په نيزبه دا امانت وی.يعنی په مشتری به ددي ضمان واجب نه وی.نه به ددي ثمن واجب وی.اونه به ددي قيمت واجب وی.

| لِأَنَّ الْعَقْدَ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ خكه چي عقدبيع معتبر نه دي فَبَقِيَ الْقَبْضُ بِإِذْنِ الْمَالِكِ نود مالك په اجازت سره قبضه پاته شوه. |
|---|

تشريح:- دليل دا دي چي دا عقد باطل دي.او عقدباطل غيرمعتبر وی.او په مبيع باندي د مشتری قبضه چونكه د مالك په اجاز سره وی.په دي وجه مبيع امانت وی.اود امانت په هلاكيدلو سره ضمان نه راخی.په دي وجه به په مشتری باندي ضمان واجب نه وی.

| وَعِنْدَ الْبَعْضِ يَكُونُ مَضْمُونًا (١) اود بعض په نيز مضمون شوه لِأَنَّهُ لَا يَكُونُ أَدْنَى حَالًا خكه چي ددي مبيع حالت ددي نه كمتر نه دي. مِنَ الْمَقْبُوضِ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ كوم چي د اخستونكی لپاره د نرخ كاوه په طور په قبضه كي راغلي وی. |
|---|

تشريح:- د بعض مشائخو په نيز په مشتری باندي ضمان واجبيږی.خكه چي د بيع باطل په صورت كي په مبيع باندي د مشتری د قبضه حالت د ،،مقبوض على سوم الشراء،، نه كم نه دي.بلكه اقوی دي.خكه چي د بيع باطل په صورت كي دشراء (اخستلو) صورت موندلي كيږی.اود ،،مقبوض على سوم الشراء،، په صورت كي صورة هم شراء (اخستل) موجود نشو.او په ،،مقبوض على سوم الشراء،، كي د شئ مقبوض هلاكيدل ،،ضمان بالقيمت،، واجبوی.نود بيع باطل په صورت كي دمبيع مقبوض هلاكيدل په درجه اولی د قيمت ضمان واجبوی.د ،،مقبوض على سوم الشراء،، صورت دادي.چه بائع د څه شئ ثمن بيان كړی.او اووائی.چه دا يوڅه.كه خوښ دي شو.نود لسو روپو په عوض كي ئي واخله.دي سړی واخستلو.او لاړلو.نودا شئ دده په قبضه كي ،،مقبوض على سوم الشراء،، ده.

| وَقِيلَ وښلی شوی دی الْأَوَّلُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ چي ړومبي قول د امام ابوحنيفه رحمه الله دي وَالثَّانِي قَوْلُهُمَا او دوهم قول د صاحبينو رحمهما الله دي. كَمَا فِي بَيْعِ أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرِ لكه څنګه چي د ام ولد او مدبر په بيع كي دی عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى لكه چي موږ به ان شاءالله روسته بيان كړو. |
|---|

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه ړومبي قول يعنی د امانت كيدلو قول دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دي.او دوهم قول يعنی د مضمون كيدلو قول د صاحبينو رحمهما الله دي.لكه څنګه چي د ام ولد اود مدبر په بيع كي دی.يعنی كه ام ولد او مدبر خرڅ كړي شو.او دواړه د مشتری په قبضه كي هلاك شو.نود حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز مشتری باندي ددي دواړو ضمان نه واجبيږی.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز ضمان واجبيږی.ددي تفصيل به ان شاءالله روسته بيان كړو.

| وَالْفَاسِدُ يُفِيدُ الْمِلْكَ عِنْدَ اتِّصَالِ الْقَبْضِ بِهِ او بيع فاسد د قبضه ملاويدلو په وخت د ملك فائده وركوی وَيَكُونُ الْمَبِيعُ مَضْمُونًا فِي يَدِ الْمُشْتَرِي فِيهِ اود بيع فاسد په صورت كي د مشتری په قبضه كي مبيع مضمون وی. |
|---|

حل اللغة: ① الاتصال،يوځاي كيدل،② مضمون،تاوان شوي،③ نبين،بيان كړو،④ يد،قبضه

تشريح:- په وړاندي عبارت كي د بيع باطل حكم بيان شواوس په دي عبارت كي د بيع فاسد حكم بيانوی يعنی د بيع باطل او فاسد په مينځ كي توپير ښكاری كوی نو فرمايي چي بيع فاسد په قبضه كاوه سره د ملك فائده وركوی.يعنی كه مشتری د بائع په اجازت سره قبضه اوكړله.نو مشتری به د مبيع مالك شی.اود بيع فاسد په

---

(١) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله اما كونه قولهما فيعلم من قول الشارح الآتي ،، وَالثَّانِي قَوْلُهُمَا ،، كذا فی العناية (٤٤١٦) والبحر الرائق (٧٢١٦) وردالمحتار (١١٨١٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٧١٢)-



صورت كي كه مبيع د مشتری په قبضه كي هلاك شو.نودا به مضمون وی.يعنی په مشتری به ددي ضمان بالمثل يا ضمان بالقيمت واجب وی.

| وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دي كي د امام شافعي رحمه الله اختلاف دي وَسَنُبَيِّنُهُ بَعْدَ هَذَا او موږ به دا ددي نه روسته ان شاءالله بيان كړو. |
|---|

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه په بيع فاسد كي دمبيع په مضمون كيدلوكي د حضرت امام شافعي رحمه الله اختلاف دي.چه ددي تفصيل به ان شاءالله په راروان فصل كي ذكر كړو.

| وَكَذَا بَيْعُ الْمَيْتَةِ وَالدَّمِ وَالْحُرِّ بَاطِلٌ اوهم دغه ډول د مردار، وينې، اود آزاد سړی بيع باطل ده لِأَنَّهَا لَيْسَتْ أَمْوَالًا خكه چي دا شيان مال نه دي فَلَا تَكُونُ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ نود بيع محل به هم نه وی. |
|---|

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه لكه څنګه مردار، وينه،اود آزاد سړی د ثمن جوړولو په صورت كي بيع باطليږی.دغه ډول كه دا شيان مبيع جوړكړي شو.نو بيا به هم بيع باطل وی خكه چي دا شيان هركله مال نه دی.نومحل د بيع يعنی مبيع هم نشی كيدلي.اوهر كله چي مبيع غيرمال دي.نود بيع ركن،، مبادلة المال بالمال،، هم موجود نشو.او هركله چي ركن د بيع موجود نشو.نو بيع به يقينا باطل وی.

## د شراب اود خنزير بيع

| وَأَمَّا بَيْعُ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ او پاتی شو د شراب او خنزير خرڅول إِنْ كَانَ قُوبِلَ بِالدَّيْنِ نو كه ددي په مقابله كي دين وی. كَالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ فَالْبَيْعُ بَاطِلٌ ، لكه دراهم او دنانير.نو بيع باطل ده. |
|---|

تشريح:- كله چي شراب يا خنزير خرڅوی نو ددي يو صورت دا دي چي ددي په مقابله كي به دين يعنی دراهم او دنانير ذكر وی.نوپه دي صورت كي بيع باطل ده.خكه چي دا بيع نه په شرابو كي د ملك فائده وركوی.او نه ددي په مقابل دراهم او دنانيروكي ملك ثابتوی.خكه چي بيع باطل بالكل مفيد د ملك نه وی.

| وَإِنْ كَانَ قُوبِلَ بِعَيْنٍ اوكه ددي په مقابله كي عين وی.( لكه دكپړې تهان) فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده حَتَّى يَمْلِكَ مَا يُقَابِلُهُ تردي چي كوم د شرابو او خنزير په مقابله كي دی.هغه به ( قيمت سره) مملوك وی وَإِنْ كَانَ لَا يَمْلِكُ عَيْنَ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ اګرچه پخپله شراب او خنزير به مملوك نه جوړيږی. |
|---|

تشريح:- په دي عبارت كي د شرابو او خنزير د خرڅ دوهم صورت بيانوی هغه دا چي ددي په مقابله كي عين وی مثلاً د كپړې پلنډه ذكر وی.نو په دي صورت كي بيع فاسد ده.خكه چي مشتری به د ثوب يعنی د كپړې د تهان د قيمت په عوض د كپړې دتهان مالك شی.خو عاقدآخر به د شرابو اود خنزير مالك نه وی.

| وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الْخَمْرَ مَالٌ او وجه دفرق داده.چه شراب مال دي وَكَذَا الْخِنْزِيرُ مَالٌ او هم دغه ډول خنزير مال دي عِنْدَ أَهْلِ الذِّمَّةِ اهل ذمه په نيز إِلَّا أَنَّهُ غَيْرُ مُتَقَوَّمٍ خودا شرعاً غير متقوم دي لِمَا أَنَّ الشَّرْعَ أَمَرَ بِإِهَانَتِهِ وَتَرْكِ إِعْزَازِهِ خكه چي شريعت (په دي كي د هريو اهانت ( د سپكوالی) اود اعزاز پريښولو حكم كړي دي. وَفِي تَمَلُّكِهِ بِالْعَقْدِ مَقْصُودًا إِعْزَازٌ لَهُ حالانكه په قصد سره د عقد په ذريعه ددي د ملكيت په حاصلولوكي ددي اعزاز دي. |
|---|

حل اللغة: ① الاهانة،سپكوالي،② متقوم،قيمت③ ی،توكه پريخودل،④ اعزاز،عزت وركول

تشريح:- په دي دواړو صورتونوكي وجه د توپير داده.چه شراب او خنزير د ذميانو په نيز مال شمارلي كيږی.خو شرعا غيرمتقوم او غيرمنتفع به دي.او شرعاً غيرمتقوم خكه دي.چه الله تعالی دی ته رجس يعنی پليت ونيلي دي اود دي نه د ځان ساتلو حكم فرمائيلي دي.اودا ښكاره ده.چه پليت شئ هيڅ كله معزز نشی كيدلي.بلكه دا د سپكوالی قابل وی.اود خنزير حرمت ئي په قرآن پاك كي بيان كړي دي اوكوم شئ چي حرام كړي شی.هغه د شريعت په نظر كي معزز نه وی.بلكه د اهانت قابل وی.دي دواړو آيتونو نه ثابته شوه.چه شراب او خنزير دواړه مستحق د اهانت دی.او ددي د عزت نه كاوه حكم دي.

وَهٰذَا لِأَنَّهُ مَتٰى اشْتَرَاهُمَا بِالدَّرَاهِمِ او دا ځکه چې هرکله دا دواړه ئې د دراهمو په عوض واخستل فَالدَّرَاهِمُ غَيْرُ مَقْصُوْدَةٍ نو دراهم غیرمقصود دی لِكَوْنِهَا وَسِيلَةً ځکه چې دراهم (د شرابو اوخنزیر حاصلولو) ذریعه ده لِمَا أَنَّهَا تَجِبُ فِي الذِّمَّةِ، ځکه چې دا د مشتری په ذمه واجبیږی وَإِنَّمَا الْمَقْصُوْدُ الْخَمْرُ او مقصود صرف شراب دی فَسَقَطَ التَّقَوُّمُ أَصْلًا نو متقوم کیدل بالکل ساقط شو.

تشریح:- په کوم صورت کې چې ددې په مقابل کې د دراهمو او دنانیرو ذکرشوې دې، په هغه صورت کې شراب او خنزیر مبیع، او دراهم او دنانیر ثمن دی. او په عقدبیع کې مبیع مقصود وی. ثمن مقصود نه وی. ثمن خود مبیع حاصلولو ذریعه او وسیله وی. ځکه چې ثمن یعنی دراهم او دنانیر په ذمه واجب وی. او کوم شئ چې په ذمه کې واجب وی. هغه غیر مقصود وی. نو ثابته شوه، چه ثمن یعنی دراهم او دنانیر غیرمقصود دی. او مبیع یعنی شراب او خنزیر مقصود دی. او شراب اوخنزیر په مقصود ګرځولو کې ددې عزت کول لازمیږی. حالانکه ددې عزت کول خلاف مامور به دی. نود شراب او خنزیر متقوم کیدل، بالکلیه ساقط شو. پخپله ددې په حق کښې هم، اوددې په مقابل یعنی د دراهم او دنانیرو په حق کې هم. نو مبیع غیرمتقوم شو. اود غیرمتقوم شئ بیع باطل وی. په دې وجه به په دې صورت کې بیع باطل وی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى الثَّوْبَ بِالْخَمْرِ په خلاف ددې کله چې د شرابو په عوض کپړه واخستله لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لِلثَّوْبِ إِنَّمَا يَقْصِدُ تَمَلُّكَ الثَّوْبِ بِالْخَمْرِ ځکه چې د کپړې اخستونکی مقصود د شرابو په ذریعه د کپړې مالك کیدل دی وَفِيهِ إِعْزَازٌ لِلثَّوْبِ دُوْنَ الْخَمْرِ او په دې کې د کپړې اعزاز دې. د شرابو نه دې. فَبَقِيَ ذِكْرُ الْخَمْرِ مُعْتَبَرًا فِي تَمَلُّكِ الثَّوْبِ نود شرابو ذکر د کپړې مالك کیدلو لپاره معتبر شو لَا فِي حَقِّ نَفْسِ الْخَمْرِ او پخپله د شرابو په حق کې معتبر نه دې حَتّٰى فَسَدَتِ التَّسْمِيَةُ تردې چې د شرابو ثمن جوړیدل فاسد شو وَوَجَبَتْ قِيمَةُ الثَّوْبِ اود کپړې قیمت واجب شو دُوْنَ الْخَمْرِ، نه د شرابو وَكَذَا إِذَا بَاعَ الْخَمْرَ بِالثَّوْبِ او هم دغه ډول کله ئې چې شراب د کپړې په عوض خرڅ کړل لِأَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ شِرَاءُ الثَّوْبِ بِالْخَمْرِ ځکه چې (د کپړې د اخستونکی د اړخه کپړه) دشرابو په عوض اخستل معتبر دی لِكَوْنِهِ مُقَايَضَةً ځکه چې دا بیع مقایضه ده.

حل اللغة: ① الثوب، جامه، ② تملک، مالك جوړول، ③ الثمنية، ثمن جوړول، ④ شراء، اغستل

تشریح:- که د شراب اوخنزیر په مقابله کې دکپړې تهان ذکر شو. نودا بیع فاسد ده. که پخپله ئې تهان مبیع، او شراب ثمن جوړ کړی وی. او که شراب ئې مبیع، او تهان ئې ثمن جوړ کړې وی. ځکه چې دا بیع مقایضه ده. او په بیع مقایضه کې په عوضینو کې هر یو ثمن هم کیدلې شی. او مبیع هم کیدلې شی. نو هرکله چې هر یو ثمن او مبیع دواړه کیدلې شی. نود کپړې تهان مبیع او شراب به ثمن ګرځولې شی. او هرکله چې د کپړې تهان مبیع شو. نو اعزاز د کپړې اوشو. د شرابو اونشو. ځکه چې شراب د ثمن کیدلو په وجه د کپړې حاصلولو ذریعه ده. پخپله مقصود نه ده. نو هرکله چې اعزاز د کپړې اوشو. د شرابو اعزاز اونشو. نو خلاف مامور به هم نه لازمیږی. او هرکله چې د خلاف مامور به ارتکاب لازم نشو. نو بیع به باطل هم نه وی. خو چونکه شراب غیرمتقوم دی. اود مسلمان دا سپارل، او په دې باندې قبضه کول، دواړه ناجائز دی. ځکه به ددې ثمن جوړول، او ذکرکول فاسد وی. او ددې په وجه به بیع فاسد وی. اود ثوب په مشتری به د کپړې قیمت واجب وی.

پاتې شوه داخبره چې هرکله دواړه عوضین ثمن او مبیع دواړه کیدلې شی. نو شراب ثمن او کپړې مبیع ولې جوړ کړې شو؟ ددې ځواب دادې، چه د شرابو د مبیع جوړولو په صورت کې بیع باطلیږی. اود ثمن جوړولو په صورت کې بیع فاسد وی. نود مسلمان تصرف په قدر د امکان، د بطلان نه د بچ کاوه لپاره د فساد طرف، په اړخ د بطلان باندې ترجیح ورکړې شوې ده. ځکه چې فاسد اباحت ته نژدې وی. او په باطل کې د اباحت هیڅ وجه موجود نه وی.

د ام الولد، مدبر، اود مکاتب بیع

قَالَ فرمانی. وَبَيْعُ أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرِ وَالْمُكَاتَبِ فَاسِدٌ اود ام ولد، مدبر اود مکاتب بیع فاسد ده.



تشریح:- ام ولد هغه وینځې ته وئیلې شی. چه دې سره ددې مولا جماع کړې وی. او ددې په نتیجه کې ددې بچې پیدا شوې وی. ① مدبر هغه غلام ته وائی چې دده آزادی دده مولا په مطلق مرګ باندې معلق کړې وی. مثلاً داسې ئې وئیلې وی، چه ته زما د مرګ نه روسته آزاد ئې. یا که زه مړ شوم. نو ته آزاد ئې. او دې ته مدبر مطلق وائی ② اویا دا چې دده آزادی دده مولا په یوخاص مرګ باندې معلق کړې وی. مثلاً داسې ئې وئیلې وی. که زه په فلانی سفر کې مړ شوم. نو ته آزاد ئې. یا ئې داسې وئیلې وی. که زه په فلانئ بیمارئ کې وفات شوم. نو ته آزاد ئې. دې ته مدبر مقید وائی ③ اومکاتب هغه غلام ته وائی. چه دده لپاره مولا بدل کتابت مقرر کړې وی. اود آزادولو معامله ئې ورسره کړې وی.

وَمَعْنَاهُ بَاطِلٌ او ددې مطلب دادې. چه باطل ده لِأَنَّ اسْتِحْقَاقَ الْعِتْقِ قَدْ ثَبَتَ لِأُمِّ الْوَلَدِ ځکه چې د ام ولد لپاره د آزادیدلو استحقاق ثابت شو.

حل اللغة:- ① الاستحقاق، مستحق جوړیدل، ② العتق، آزادیدل، ③ الولد، بچې، ④ ثبت، ثابت شو

تشریح:- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی. چه د ام ولد، مدبر، اود مکاتب بیع فاسد ده. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. د ذکرشوو غلامو په بیع باندې د بیع فاسد نه مراد بیع باطله ده او دا وضاحت شارح ځکه اوکړو چې په فاسد وئیلو سره دا وهم کیږی. چه په قبضه کولو سره په ذکرشوی غلامانو کې د مشتری ملك ثابتیږی. حالانکه داسې نه ده. بلکه ددوی بیع بالکل مفید د ملك نه ده. اګرچه مشتری قبضه ولې نه وی کړې. اود بیع بالکل مفید د ملك نه کیدل، ددې د باطل کیدلو علامت دې.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا} [1] چه ماریه قبطیه رضي الله عنها ددې ځوی آزاده کړله.

حل اللغة:- ① اعتق، آزاده کړه ② الحرية، آزادی ③ الانعقاد، منعقد کیدل ④ استحق، مستحق شوې دې

تشریح:- اود بطلان دلیل دادې، چه د ام ولد لپاره د آزادیدلو استحقاق پیدا ثابت شو. یعنی ام ولد به د آزادیدلو مستحق وی. ځکه چې د رسول الله ﷺ وینځې ماریه قبطیه رضي الله عنها نه کله د ابراهیم رضي الله عنه ولادت اوشو. نو نبی کریم ﷺ ته عرض کړې شو. «الا تعتقها» آیا تاسو به دا نه آزادوئ. نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو. «اعتقها ولدها» ددې ځوی دا د آزادئ متسحق کړله. دحدیث حقیقی معنی اګرچه داده. چه ددې ځوی دا آزاده کړله. خودا معنی بالاتفاق مراد نه ده. بلکه مجازی معنی (چې ددې ولد دا د آزادئ مستحق کړله) مراد ده.

وَسَبَبُ الْحُرِّيَّةِ انْعَقَدَ فِي الْمُدَبَّرِ فِي الْحَالِ اود مدبر په حق کې د آزادیدلو سبب فی الحال منعقد شو لِبُطْلَانِ الْأَهْلِيَّةِ بَعْدَ الْمَوْتِ، ځکه چې د مرګ نه روسته د مولا لیاقت باطلیږی وَالْمُكَاتَبُ اسْتَحَقَّ يَدًا عَلَى نَفْسِهِ لَازِمَةً فِي حَقِّ الْمَوْلٰى اود مکاتب پخپل ذات باندې د داسې تصرف مستحق شو. کوم چې د مولا په حق کې لازم دې.

تشریح:- نو لنډیز دا شوه چې ام ولد د آزادئ مستحقه وی. اود مدبر په حق کښې فی الحال د حریت او آزادئ سبب ثابت دې. ځکه مولی یو عاقل انسان دې اوهغه د خپل غلام د مدبر کاوه اعلان کړې دې اودعاقل کلام مهمل او لغو نه وی نو سبب د حریت ثابت في الحال ثابت شو. او مکاتب پخپل ذات باندې دتصرف مستحق دی. اګرچه دا تصرف د مولا په حق کې لازم دې. اود مکاتب په حق کې غیرلازم دې. د مولا په حق کې ځکه لازم دې، چه کله عاجز شی. نود مولا د رضامندئ نه بغیر فسخ کولې شی. په دې وجه دده په حق کې دا تصرف غیرلازم دې.

وَلَوْ ثَبَتَ الْمِلْكُ بِالْبَيْعِ او که د بیع په وجه د مشتری ملکیت ثابت شو لَبَطَلَ ذٰلِكَ كُلُّهُ نو دا واړه به باطل شی فَلَا يَجُوْزُ په دې وجه بیع جائز نه ده.

تشریح:- نو که د ذکر شوی غلامانو د بیع په وجه دمشتری لپاره ملکیت ثابت شی. یعنی مشتری د ام

(١) تقدم تخريجه في باب الإستيلاد)_

ولد،مدبر،اود مكاتب مالك شي.نود ام ولد استحقاق ازادي،اود مدبر سبب ازادي،اود مكاتب پخپل ذات باندي تصرف واړه باطليږي. ځكه چي د ام ولد استحقاق آزادي ،اود مشتري لپاره ثبوت ملك په مينځ كي ،اود مدبر په حق كي سبب آزادي،اود ثبوت ملك په مينځ كي ،اود مكاتب پخپل ذات باندي استحقاق تصرف،اود ثبوت ملك په مينځ كي منافات دي.او قاعده ده.چه د ، ،احدالمتنافيين،، د نه ثابتيدلو نه روسته آخر منتفي كيږي.نو هركله چي د مشتري لپاره ملك ثابت شي.نو استحقاق آزادي،او سبب آزادي،او استحقاق تصرف واړه باطليږي.حالانكه دا دري واړه شيان باطل نه دي.بلكه ثابت دي.لكه ځنګه چي وړاندي په دليلونو سره معلوم شوي دي.او هركله چي دا دري واړه شيان ثابت دي.نود مشتري لپاره به ملك ثابت نه وي.ځكه چي د دوي (دوه) متنافي ځيزونو جمع كول محال دي.او هركله چې د مشتري لپاره ملك ثابت نشو.نو معلومه شوه.چه دا بيع مفيد د ملك نه ده.او كومه بيع چي مفيد د ملك نه وي.هغه باطل وي.په دي وجه به د ذكر شوي غلامانو بيع باطل وي.

وَلَوْرَضِيَ الْمُكَاتَبُ بِالْبَيْعِ اوكه مكاتب پخپل بيع با ندي پخپله راضي شو فَفِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دي كي دوي (دوه) روايتونه دي وَالْأَظْهَرُ الْجَوَازُ او زيات ښكاره جواز دي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.كه مكاتب پخپله بيع باندي پخپله راضي شو.نو په دي كي دوي (دوه) روايتونه دي. يو روايت د عدم جواز دي.او دوهم روايت دجواز دي.ښكاره هم دغه ده.ځكه چي عدم جواز د مكاتب د حق په وجه وو.خوكله چي ده پخپله رضامندئ سره پخپله خپل حق ساقط كړلو.نو كتابت به فسخ وي.او بيع به جائز وي.ددي تائيد د صيحينو حديث سره هم كيږي.چه حضرت عائشه رضي الله عنها بريره مكاتبه ددي په رضامندئ سره واخستله.او آزاده ئي كړله.

وَالْمُرَادُ الْمُدَبَّرُ الْمُطْلَقُ اود مدبر نه مراد مطلق مدبر دي دُونَ الْمُقَيَّدِ، مقيد مدبر مراد نه دي وَفِي الْمُطْلَقِ خِلَافُ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ او په مطلق مدبر كي د امام شافعي رحمه الله اختلاف دي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْعَتَاقِ او موږ دا په ، ،كتاب العتاق، ، كي ذكركړي دي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په متن كي د مدبر نه مراد مدبرمطلق دي.يعني د مدبرمطلق بيع باطل ده.ځكه چي د مدبر مقيد بيع بالاتفاق جائز ده.

دليلنا ۞ حديث دي. «المدبر لايباع ولايوهب ولايورث» يعني، ،مدبر نه خرڅولي شي.او نه هبه كولي شي.او نه په ده كي وراثت جاري كيږي،، ددي حديث نه ښه په وضاحت سره ثابتيږي.چه د مدبر بيع ناجائز ده.اوكه امام شافعي رحمه الله دا فرمائي.چه رسول الله ﷺ مدبر خرڅ كړي دي.نو ددي خواب دادي.چه هغه مدبرمطلق نه وو. بلكه مدبر مقيد وو.اود مدبرمقيد د بيع د جواز موږ هم قائل يو.ددي تفصيل په، ،كتاب العتاق،باب التدبير، ، كي اوګورئ.

مذهب الشافعي رحمه الله ۞ حضرت امام شافعي رحمه الله د مدبر مطلق بيع هم جائز ګرځولي ده.

دليله ۞ دليل دادي.چه دمدبر مطلق په صورت كي د غلام آزادي د مولا په مرګ باندي معلق شوي ده.او آزادي په كومي آزادئ باندي معلق كول، (مثلا داسي وئيل چه «إن دخلت الدار فأنت حر» د بيع او هبه لپاره مانع نه دي.په دي وجه مدبر مطلق يعني د غلام آزادي دمولا په مطلق مرګ باندي د معلق كاوه په صورت كي هم د غلام خرڅول او هبه كول جائز دي.

## د مشتري په قبضه كښي د ام ولد يامدبر هلاكيدل

قَالَ وَإِنْ مَاتَتْ أُمُّ الْوَلَدِ أَوِ الْمُدَبَّرُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي اوكه ام ولد يا مدبر د مشتري په قبضه كي مړشو فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ده باندي ضمان نشته.

تشريح:- صورت د مسئلي دادي.چه ام ولد يامدبر كه د مشتري په قبضه كي مړشي.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مشتري باندي هيڅ ضمان نه واجبيږي.



وَقَالَا او صاحبين رحمهما الله فرمايي عَلَيْهِ قِيمَتُهُمَا[1] چې په ده به د دواړو قيمت واجب وي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ وهم دا د امام صاحب يو روايت دي.

تشريح:- اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په مشتري باندي قيمت سره ضمان واجبيږي.هم دا يو روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دي.د هدايه د عبارت نه ښكاره كيږي.چه په مدبر او ام ولد دواړو كي دامام صاحب رحمه الله دوي (دوه) روايتونه دي.يو روايت د ضمان د عدم وجوب،او يو د وجوب ضمان.حالانكه دا غلط دي.بلكه صحيح دادي.چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه د مدبر په حق كي دوي (دوه) روايتونه دي.يعني كه مدبر د مشتري په قبضه كي مړشو.نود امام صاحب رحمه الله يو روايت دادي.چه په مشتري به ضمان واجب نه وي.او دوهم روايت دادي چه ضمان بالقيمت به واجب وي.اود ام ولد په حق كي دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله واړه روايتونه په عدم وجوب ضمان باندي متفق دي.يعني كه د مشتري په قبضه كي ام ولد مړشو.نود امام صاحب رحمه الله نه دا روايت دي چه په مشتري به ضمان واجب نه وي.

لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دادي أَنَّهُ مَقْبُوضٌ بِجِهَةِ الْبَيْعِ چې په ام ولد او مدبر كي هر يو په نسبت د بيع مقبوض دي فَيَكُونُ مَضْمُونًا عَلَيْهِ ځكه به مبيع كي دده په ضمانت كي وي كَسَائِرِ الْأَمْوَالِ، لكه ځنګه چي د نورو مالونو حكم دي وَهَذَا لِأَنَّ الْمُدَبَّرَ وَأُمَّ الْوَلَدِ يَدْخُلَانِ تَحْتَ الْبَيْعِ ځكه چي مدبر او ام ولد دواړه د بيع لاندي داخليږي حَتَّى يَمْلِكَ مَا يُضَمُّ إِلَيْهِمَا فِي الْبَيْعِ تردي چي كوم شئ ددي سره ملاو كړي شي.هغه ددي په بيع كي د مشتري مملوك جوړيږي.

حل اللغة:- ① الجهة،نسبت، ② يدخل،داخليږي، ③ الضم،يوځائي كيدل، ④ يملك،مالك كيږ.

تشريح:- د صاحبينو رحمهما الله دليل دادي.چه په مدبر او ام ولد باندي د مشتري قبضه په جهت د بيع وي.اود بيع په جهت قبضه ځكه وي.چه مدبر او ام ولد دواړه دعقد بيع لاندي داخليږي.هم دا وجه ده.كه مدبر او ام ولد سره كوم غلام يوځائي خرڅ كړي شو.نو مشتري ددي غلام ددي د برخي (حصي) د ثمن په عوض مالك كيږي. كه مدبر او ام ولد د عقد بيع لاندي نه داخليدلي.نوكوم غلام چي دي سره يوځائي خرڅ شوي دي مشتري به ددي هرګز مالك نه جوړيدلو.لكه مثلاً كه څوك آزاد سړي او غلام يوځائي خرڅ كړي.نو مشتري به د غلام مالك نه وي.ځكه چي آزاد سړي دكوم سره چي غلام يوځائي خرڅ شوي دي.دا دعقدبيع لاندي نه داخليدلي .بهرحال دا خبره ثابته شوه.چه مدبر او ام ولد په عقدبيع كي داخليدلي شي.او كوم شئ چي په عقدبيع كي داخليږي.په هغي باندي د مشتري قبضه په جهت د بيع كيږي.او، ،مقبوض بجهت البيع،، مضمون وي.يعني د هلاكت په صورت كي په قابض باندي ضمان واجبيږي.لكه ځنګه چي نور اموال د، ،مقبوض على سوم الشراء،، په صورت كي مضمون وي.كه مدبر يا ام ولد د مشتري په قبضه كي مړه شو.نو په مشتري به ددي ضمان واجب وي.

بِخِلَافِ الْمُكَاتَبِ په خلاف د مكاتب لِأَنَّهُ فِي يَدِ نَفْسِهِ، ځكه چي دا پخپله ذاتي قبضه كي دي فَلَا يَتَحَقَّقُ فِي حَقِّهِ الْقَبْضُ نو دده په حق كي به قبضه نه متحقق كيږي وَهَذَا الضَّمَانُ بِهِ حالانكه دا ضمان د قبضه په وجه دي.

تشريح:- په دي عبارت كي د صاحبينو رحمهما الله د اړخه د سوال خواب دي.سوال دادي. كه د يوځيز عقدبيع لاندي داخليدل،او كوم شئ چي ددي سره يوځائي خرڅ كړي شوي دي.په هغي باندي د مشتري ملكيت ثابتيدل، د ضمان واجبولو سبب دي.نود مكاتب په حق كي هم داخبره كيدل پكار دي.كه مكاتب د مشتري په قبضه كي مړشي.نو په مشتري دي ددي ضمان واجب وي.ځكه چي مكاتب خو د عقدبيع لاندي هم داخليږي.او كه غلام ده سره يوځائي خرڅ كړي شي.نومشتري ددي غلام دده د برخي (حصي) دثمن په مالك كيږي هم.حالانكه كه مكاتب دمشتري په قبضه كي مړشي.نود صاحبينو رحمهما الله په نيزيه مشتري باندي د مكاتب ضمان نه واجبيږي. داسي ولي

[1] القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في البحر(٦\٧٢) نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٨)-

ده؟ ددې ځواب دادې چه دمكاتب قبضه پخپل ځان باندې چونكه پخپله وی په دې وجه دده په حق كې د مشتری قبضه نه متحقق كيږی. حالانكه دا ضمان د قبضه په وجه واجبيږی. نو هركله چې په مكاتب باندې د مشتری متحقق نشوه. نو په مشتری به دده ضمان هم واجب نه وی. حاصل داچه د ضمان د وجوب مدار د مشتری قبضه ده. د عقد لاندې داخليدل نه دی. او نه ددې شي مالك كيدل دی. كوم ثې چې دده سره يوځائې خرڅ كړې دې. نو هركله چې د ضمان مدار يعنی قبضه موجود نشوه. نو په مشتری به د مكاتب ضمان هم واجب نه وی.

> وَلَهُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې أَنَّ جِهَةَ الْبَيْعِ إِنَّمَا تَلْحَقُ بِحَقِيقَتِهِ فِي مَحَلٍّ يَقْبَلُ الْحَقِيقَةَ وَهُمَا لَا يَقْبَلَانِ حَقِيقَةَ الْبَيْعِ چې جهت د بيع حقيقت د بيع نه قبلوی فَصَارَا كَالْمُكَاتَبِ نودا د واړه هم د مكاتب پشان شو.

**تشريح:-** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چې جهت د بيع په هغه اموالوكې د ضمان موجب دې. په كومو مالونوكې جهت د بيع حقيقت د بيع سره لاحق كيدلې شي. اوجهت د بيع حقيقت د بيع سره په هغه اموالوكې لاحق كولې شي. كوم اموال چې حقيقت د بيع قبلوی. او مدبر او ام ولد چونكه د مكاتب پشان حقيقت د بيع نه قبلوی. په دې وجه ددوی په حق كې جهت د بيع، حقيت د بيع سره نشي لاحق كولې. او هركله چې ددوی په حق كې جهت د بيع، حقيت د بيع سره نشي لاحق كيدلې. نوجهت د بيع موجب د ضمان هم نشو. او هركله چې جهت بيع موجب د ضمان نه دې. نو مدبر او ام ولد كه د مشتری په قبضه كې مړه شي. نو په مشتری به ددوی ضمان واجب نه وی.

> وَلَيْسَ دُخُولُهُمَا فِي الْبَيْعِ فِي حَقِّ أَنْفُسِهِمَا، او ددوی په بيع كې دننه داخليدل، ددوی د ذات په حق كې نه دی وَإِنَّمَا ذَلِكَ لِيَثْبُتَ حُكْمُ الْبَيْعِ فِيمَا ضُمَّ إِلَيْهِمَا بلكه صرف په دې وجه دې چه دوی سره ملاو شوې شي؛ كې د بيع حكم ثابت شي.

**تشريح:-** په دې عبارت كې د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب دې. حاصل د ځواب دادې. چه مدبر اوام ولدچونكه د بيع محل نه دی. په دې وجه دا دواړه پخپله د خپل ذات په حق كې عقدبيع لاندې نه داخليږی. بلكه صرف په دې وجه د بيع لاندې داخليږی چه كوم شي؛ يعنی غلام وغيره دې څره يوځائې خرڅ كړې شوې دې په هغې كې د بيع حكم يعنی د مشتری ملكيت ثابت شي. او داسې كيدل مستبعد نه دی.

> فَصَارَ نوداسې شوه كَمَالِ الْمُشْتَرِي لَا يَدْخُلُ فِي حُكْمِ عَقْدِهِ بِانْفِرَادِهِ لكه چې د مشتری مال دده د بيع په حكم كې خانله نه داخليږی هُوَ إِنَّمَا يَثْبُتُ حُكْمُ الدُّخُولِ فِيمَا ضَمَّهُ إِلَيْهِ بلكه د داخليدلو حكم صرف په هغه مال كې ثابتيږی. كوم چې بائع د مشتری مال سره ملاو كړې دې كَذَا هَذَا هم دا حكم د مدبر او ام ولد دې.

**حل اللغة:-** ① الانفراد، خانله. ② ضم، يوځائې كيدل. ③ الدخول، داخليدل. ④ يثبت، ثابتيږی

**تشريح:-** په شريعت كې ددې مثال موجود دې. كه يوكس خپل غلام اود خالد غلام يوځائې كړل. او په خالد باندې ئې خرڅ كړل. نو خالد د بائع د غلام دده د برخې (حصې) د ثمن عوض مالك كيږی. نود بائع د غلام په حق كې عقد بيع درست ده. اود مشتری يعنی د خالد غلام عقدبيع لاندې پخپله د خپل ذات په حق كې اګرچه داخل نشو. خود بائع په غلام كې حكم بيع يعنی دمشتری ملك ثابتولو لپاره د بيع لاندې داخليږی. دغه ډول دلته كې مدبر او ام ولد اګرچه پخپله دخپل ذات په حق كې د عقدبيع لاندې نه داخليږی. خوكوم غلام چې دوی سره يوځائې خرڅ كړې شوې دې. په دې كې د مشتری ملكيت ثابتولو لپاره د عقدبيع لاندې داخل شوی دی. او هركله چې مدبر او ام ولد د خپل ذات په حق كې د بيع لاندې نه داخليږی. نو په دوی باندې د مشتری قبضه هم بجهت البيع نشوه. او هركله چې بجهت البيع مقبوض نشو. بلكه هم داسې د مالك په اجازت سره مقبوض شو. نود مرګ په صورت كې به په مشتری باندې ددوی ضمان هم واجب نه وی. خكه چې ضمان د ،،مقبوض بجهت البيع،، په صورت كې واجبيږی.

### دمځې ښكار كولو نه وړاندې د بيع حكم

> قَالَ وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ السَّمَكِ قَبْلَ أَنْ يُصْطَادَ فرمائی. اود ښكار كاوه نه وړاندې د كب بيع جائز نه ده لِأَنَّهُ بَاعَ مَا لَا يَمْلِكُهُ خكه چې ده داسې شي؛ خرڅ كړو. چه دې د هغې مالك نه دې.

**حل اللغة:-** ① السمك، كب. ② يصطاد، چه ښكار شی. ③ الخطيرة، د اوبو كنده. ④ القی، اوغورځول



**تشريح:-** ① اصولی طور دا خبره په ذهن كې ساتئ؛ چه د بيع د جواز لپاره مبيع د بائع مملوك او مقدورالتسليم كيدل ضروری دی. كه مبيع د بائع مملوك نه وی. يا مملوك وی. خو مقدورالتسليم نه وی. نو بيع به جائز نه وی. س په كومو صورتونوكې په اوبوكې دننه د مهيانو خرڅول جائز دی. په هغه صورتونوكې به مشتری ته خيار رؤيت حاصل وی.

② خكه چې د مهيانو (كبانو) په اوبوكې كتل، په اوچه باندې د كتلو نه مختلف وی. يعنی په اوبو كې دننه كتل، د اوچې كتلو لپاره كافي نه دی.

③ صورت د مسئلې دادې، چه د ښكار كاوه نه وړاندې په درياب يا وياله كې د مهيانو خرڅول جائز نه دی. خكه چې مهيان تر كومه پورې په درياب يا تالاب كې وی. تر هغه وخته پورې دا د چا ملك نه وی. بلكه مباح وی. هرسړې دا نيولې شي. اود غيرمملوك بيع جائز نه ده. په دې وجه د مهيانو بيع په دريا يا تالاب كې جائز نه ده.

> وَلَا فِي حَظِيرَةٍ اود اوبو په كنده (تالاب) كې (خرڅول) جائز نه دې إِذَا كَانَ لَا يُؤْخَذُ إِلَّا بِصَيْدٍ كله چې نيولې شوې نه وی. مګر په ښكار سره لِأَنَّهُ غَيْرُ مَقْدُورِ التَّسْلِيمِ، خكه چې سپارل دده په قدرت كې نه دی وَمَعْنَاهُ إِذَا أَخَذَهُ ثُمَّ أَلْقَاهُ فِيهَا او ددې مطلب دادې. چه هركله مشتری دا نيولې وی. او په كنده كې اچولې وی.

**تشريح:-** كه مهيان په داسې كنده كې وی. چه دا د درياب يا تالاب نه جلا بند تړلې شوې وی. نوكه دا دومره لويه وی چې ددې نه د څه حيلې نه بغير په لاس اچولو سره مهيان نيول ممكن نه وی. نو په دې صورت كې ددې نه مايان (كبان) خرڅول جائز نه دی. خكه چې دا مايان (كبان) اګرچه د بائع مملوك دی. خو

> لَوْ كَانَ يُؤْخَذُ مِنْ غَيْرِ حِيلَةٍ اوكه د حيلې نه بغير نيولې كيدلې شی جَازَ نو جائز دې إِلَّا إِذَا اجْتَمَعَتْ فِيهَا بِأَنْفُسِهَا خو كله چې په كنده كې مايان (كبان) پخپله جمع شوې وی وَلَمْ يَسُدَّ عَلَيْهَا اود داخليدلو لاره نه وی بنده كړې شوې. (نو بيع جائز نه ده) الْمَدْخَلَ لِعَدَمِ الْمِلْكِ خكه چې ملك معدوم دې.

**حل اللغة:-** ① حيلة، چل\تدبير، ② يسد، بنده، ③ انفسها، پخپله، ④ الدخل، د داخليدو لاره

**تشريح:-** او كه خطيره وړه وی. چې ددې نه د څه حيلې نه بغير مهيان نيولې شی نو ددې مايان (كبان) خرڅول جائز دی. خكه چې د وړوكې كندې مايان (كبان) د بائع مملوك هم دی. او بائع ددې په سپارلو هم قادر دې. او كه خطيره وړه وی. او مايان (كبان) په دې كې پخپله راجمع شو. او بائع ددوی د راتګ و لاره هم بند نكړله. نودا هم ناجائز دی. خكه چې د بائع د اړخه چونكه ددې د بندولو او په جمع كاوه كې هيڅ عمل اونه موندلې شو. په دې وجه به ددې مايان (كبان) د بائع مملوك نه وی. اود غيرمملوك بيع چونكه ناجائز ده. په دې وجه ددې كندې د مهيانو بيع ناجائز دی. خو كه د مهيانو د راتګ و لاره ئې بنده كړله. او ددې نيول د څه حيلې نه بغير ممكن شو. نو بيع جائز ده.

### په هواكښې د مارغانو د بيع حكم

> قَالَ وَلَا بَيْعُ الطَّيْرِ فِي الْهَوَاءِ فرمائی. اود داسې مارغه بيع جائز نه ده كومه چې په هواكې وی لِأَنَّهُ غَيْرُ مَمْلُوكٍ قَبْلَ الْأَخْذِ، خكه چې دا د نيولو نه وړاندې غيرمملوك دې. وَكَذَا لَوْ أَرْسَلَهُ مِنْ يَدِهِ او هم دغه ډول كه دا ئې پخپل لاس سره پريښودې وی. لِأَنَّهُ غَيْرُ مَقْدُورِ التَّسْلِيمِ خكه چې دا غيرمقدورالتسليم دې.

**حل اللغة:-** ① الطير، مارغه، ② الاخذ، اخستل، ③ مقدور، د قدرت لاندې، ④ ارسال، ليږل

**تشريح:-** د مارغانو يوصورت دا دې چې د ښكار كاوه نه وړاندې په هواكې خرڅ كړې شی كې بالاتفاق بيع ناجائز ده. خكه چې په دې صورت كې مارغه غير مملوك دې او غير مملوك شي؛ خرڅول جائز نه دی

② دښكار كاوه نه روسته په هواكې پريښولو نه روسته مارغه خرڅول په دې صورت كې هم بالاتفاق بيع ناجائز ده. په ړومبی صورت كې د مارغه د غير مملوك كيدلو په وجه او په دوهم صورت كې د غيرمقدور التسليم كيدلو په وجه، خكه چې په دوهم صورت كې د ښكار كاوه په وجه مارغه د بائع مملوك شو. خود پريښولو په وجه غيرمقدورالتسليم شوې دې.

③ مارغه پخپله څي راځي.مثلاً كونتره چې پخپله ځي او پخپله راځي.( د داسې مارغه خرڅول)په كي بالاتفاق بيع جائز ده.ځكه چې مارغه د څه حيلې نه بغير نيول ممكن دي.البته كه نيول ئې د څه حيلې نه بغير ممكن نه وي نو بيع جائز نه ده.

**وَلَابَيْعُ الْحَمْلِ** ونه د حمل بيع جائز ده **وَلَا النِّتَاجِ** اونه د حمل د حمل( بيع جائز ده **لِنَهْيِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ بَيْعِ الْحَبَلِ وَحَبَلِ الْحَبَلَةِ** ([1])ځكه چې نبي كريم ﷺ د حمل،اود حمل د حمل بيع نه منع فرمائيلې ده **وَلِأَنَّ فِيهِ غَرَرًا** او ځكه چې په دې كې دهوكه ده.

**حل اللغة:-** ① **الحمل**،د رحم بچې، ② **غرر**،دهوكه، ③ **حمل الحمل**،د بچې بچې، ④ **نهي**،منع كړې ده

**تشريح:-** اود حمل يعنى د جنين اود حمل حمل بيع ناجائز ده.د حمل دبيع صورت دادې.چه مثلاً مشترى اووئيل.ددې اوښې يا وزې په نس كې چې كوم بچې دې په سلو روپو كې ما واخستلو.بائع دا قبول كړلو.اود نتائج يعنى د حمل حمل بيع داده.چه مشترى اووائى.چه ددې اوښې په نس كې كه ماده بچې وى.نو چې دا ماده بچې لوئې شى.او ددې كوم بچې پيدا شى.ما هغه واخستلو.او بائع دا قبول كړلو.د جاهليت په زمانه كې دا عادت وو.چه يو سړى به د بل نه اوښه اخستله.په دې شرط باندې چې دا اوښه به ماسره هغه وخته پورې وى.چه تركومه ددې بچې پيدا شى.بيا ددغه بچى بچې پيدا شى.نو هركله چې به ددې اوښې د بچى نه بچې پيدا شولو.نو دا اوښه به بائع ته واپس كولې شوه.اودا وښه به د مالك كيدله.

**دلائله:** ① رسول الله ﷺ دا بيع باطل اوګرځوله.اود حمل،اود حمل حمل بيع نه ئې منع اوفرمائيله.د ابن عمر رضي الله عنه روايت دې. «أن النبي ﷺ نهى عن بيع المضامين والملاقيح وحبل الحبلة» مضامين د مضمون جمع ده.كوم چې د نرښاروى په صلب كې وى.هغې ته مضمون وائى.،ملاقيح،، د ملقوح جمع ده.كوم چې د ماده په رحم كې وى.هغې ته ملقوح وائى.بهر حال د رسول الله ﷺ د نهى په وجه ددې بيع ناجائزده. ② دوهم دليل دادې.چه په دې بيع كې دهوكه ده.ځكه معلومه نه ده.چه په نس كې څه شته.او كه نه هسې د هوا په وجه نس پړسيدلې ده.او د دهوكې د بيع نه رسول اكرم ﷺ منع فرمائيلې ده.په دې وجه دا بيع ممنوع ده.

### په تهينوكښې د پيو د بيع حكم

قَالَ فرمايي **وَلَا اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ** او په تهيونو كې شيدې خرڅول هم جائز نه دى **لِلْغَرَرِ** ځكه چې ( په دې كې) دهوكه **فَعَسَاهُ انْتِفَاخٌ** ده.ځكه كيداې شى.چه تهيونه د هوا نه پړسيدلې وى **وَلِأَنَّهُ يَتَنَازَعُ فِي كَيْفِيَّةِ الْحَلْبِ** اوځكه چې د لوشلو په كيفيت كې به جګړه پيداكيږى **وَرُبَّمَا يَزْدَادُ فَيَخْتَلِطُ الْمَبِيعُ بِغَيْرِهِ** او ډيركرته شيدې زيات راكوزيږى.نو مبيع به غيرمبيع سره ګډ شى.

**حل اللغة:-** ① **اللبن**،شودۀ\شيدې، ② **الضرع**،غولانځه، ③ **الانتفاخ**،د هوا ډكوالې، ④ **الحلب**،لوشل ⑤ **ينازع**، جګړه كوى، ⑥ **ربما**،كله كله، ⑦ **يختلط**،ګډوډيږى، ⑧ **عسى**، كيداې شي

**تشريح:-** مسئله داده.چه په تهيونوكې دننه شيدې خرڅول ناجائز دى. ① دليل دادې.چه په دې كې دهوكه ده.او دهوكه په دې وجه ده.ممكن ده.چه تهن د هوا په وجه پړسيدلې وى.او مشترى به په دې د پيو خيال كوى. حالانكه په دې كې به شيدې نه وى.بلكه هوا ده.اود دهوكې د بيع نه مدنى آقا ﷺ منع فرمائيلې ده.په دې وجه په تهيونو

---

(١) غريبه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج أحاديثاً منها حديث ابن عمر رضي الله عنهما عن النبي ﷺ أنه نهى عن المضامين والملاقيح وحبل الحبلة قال والمضامين ما فى أصلاب الإبل والملاقيح ما فى بطونها وحبل الحبلة ولد ولد هه الناقة أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه كذا فى نصب الرأية (٣٢/٤) وكذا أخرجه الطبرانى فى معجمه من حديث ابن عباس رضي الله عنهما عزاه إليه الهيثمى فى مجمع الزوائد (١٠٤/٤) وعزاه إلى الطبرانى فى الكبيروالبزار)_



كې شيدې خرڅول ناجائز دى. ② دوهم دليل دادې.چه د لوشلو په كيفيت كې به جګړه كيږى. مشترى به غوارى.چه په يو يو ځاځكې نچوړ كړه.او بائع به غوارى.چه په تهيونوكې څه پاتـه پريښـول پكار دى.او،، مفضى الى المنازعه،، هم د بيع د عدم جواز دليل دې. ③ دريم دليل دادې.چه شيدې په تهيونوكې ځاځكې ځاځكې جمع كيږى.نوپه تهيونوكې د پيو خرڅولو،او ددې د راوښكلو په مينځ كې به هم څه نا څه شيدې پيدا كيږى.اود خرڅولو نه روسته چې كوم شيدې په تهيونوكې پيدا شوى دى هغه غيرمبيع دې. ددې مالك بائع دې.او كوم شيدې چې د خرڅول په وخت په تهيونوكې موجود وو.هغه مبيع دې.چه ددې مالك مشترى دې. اودا دواړه يعنى مبيع او غيرمبيع داسې ملاؤ شو.چه يو د بل نه جلا كول متعذر دى.اود بيع غيرمبيع سره داسې ملاويدل،چه جلا كيدل متعذرشى.بيع باطلوى.په دې وجه به هم په دې صورت كې بيع ناجائز وى.

### د وزه (ګډې) په شا باندې د وړئ د بيع حكم

قَالَ **وَلَا الصُّوفُ عَلَى ظَهْرِ الْغَنَمِ** فرمائى.اود وزه په شا باندې وړئ اخستل هم جائزنه ده **لِأَنَّهُ مِنْ أَوْصَافِ الْحَيَوَانِ** ځكه چې وړئ د حيوان د اوصافو څخې ده.

**حل اللغة:-** ① **الصوف**،وړئ، ② **ظهر**،شا، ③ **الغنم**،چيلئ، ④ **الحيوان**،ځاروې

**تشريح:-** مسئله داده.چه د وزه او ګډې په شا باندې د وړئ خرڅول جائز نه دى.ځكه چې دا د كټ كاوه نه وړاندې دځاروى د اوصافو څخې ده.او اوصاف تابع وى.او تابع چونكه مال غيرمتقوم وى.په دې وجه د متبوع نه بغير ددې بيع جائز نه ده.

**وَلِأَنَّهُ يَنْبُتُ مِنْ أَسْفَلَ** او ځكه چې دا د لاندې اړخه راځيجى **فَيَخْتَلِطُ الْمَبِيعُ بِغَيْرِهِ** نود مبيع ګډون به غيرمبيع سره اوشى.

**حل اللغة:-** ① **ينبت**،راټوكيږى، ② **اسفل**،لاندې طرف، ③ **القوائم**،د ونو ښاخونه، ④ **اعلى**،د پورته طرف

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه وړئ د لاندې نه راځيږى.او ددې دليل دادې.چه د وزه په شان باندې كه دې ته رنګ وركړې شى.او څه ورځې دا پريخودلې شى.نو ددې پاسنئ برخه به رنګداره وى.او ددې ويښتو ويخونه به په رنګ كې رنګ شوى نه وى.ددې نه معلوميږى.چه وړئ د لاندې اړخ نه راځيږى. نو په شا باندې دوړئ خرڅولو نه پس،اود كټ كاوه نه وړاندې چې په وړئ كې د كومې برخې (حصې) زياتوالې كيږى.هغه به غيرمبيع وى.اود مبيع به د غيرمبيع سره داسې اختلاط اوشى.چه ددې جلا كول به ناممكن شى.اوهركله چې د مبيع غيرمبيع سره داسې اختلاط اوشى.نو بيع باطليږى.په دې وجه د وزه يا د ګډې په شا باندې د وړي خرڅول ناجائز او باطل دى.

**بِخِلَافِ الْقَوَائِمِ** په خلاف د ونو د ښاخونو **لِأَنَّهَا تَزِيدُ مِنْ أَعْلَى**، ځكه چې دا دپاس اړخه غټيږى.

**تشريح:-** البته د ونو ښاخونه په ونه باندې خرڅول جائز دى.ځكه چې د ونې ښاخونه د پاس اړخ نه زياتيږى.او دليل ددې دادې.چه د ونې د تنې په څه برخه باندې كه تار اوتړلې شى.او څو ورځو لپاره پريخودلې شى.نو څو ورځې روسته به هم تار د لاندې اړخ نه هم په دومره فاصله وى.په څومره فاصله باندې چې د تړلو په ورځ وو.ددې نه معلومه شوه.چه د ونې ښاخونه د پاس اړخه زياتيږى. اود ښاخونو پورتنئ برخه د مشترى ملك دې.نو څومره اضافه چې اوشوه.دمشترى په ملك كې اوشوه.نو په دې صورت كې د مبيع غيرمبيع سره اختلاط نه لازميږى.او هركله چې اختلاط اونشو.نو بيع به هم باطل نه وى.ځكه چې مبطل د بيع، مبيع د غيرمبيع سره اختلاط دى.

**وَبِخِلَافِ الْقَصِيلِ** او په خلاف د شين فصل **لِأَنَّهُ يُمْكِنُ قَلْعُهُ** ،ځكه چې ددې راوښكل ممكن دى.

**حل اللغة:-** ① **الفصل**،شين فصل، ② **قلع**،د موندنه راوښكل، ③ **موضع**،ځائى، ④ **القطع**،كټ كيدل

**تشريح:-** دغه ډول د وګو (خوشو) راټګ و نه وړاندې د شين فصل بيع جائز ده.حالانكه شين فصل هم د وړئ پشان دي.دليل دادې.چه د شين فصل راوښكل ممكن دى.اود راوښكلو په صورت كې به هيڅ نزاع نه وى.

وَالْقَطْعُ فِي الصُّوفِ مُتَعَيِّنٌ او په وړئ كي پرې كول متعين دى فَيَقَعُ التَّنَازُعُ فِي مَوْضِعِ الْقَطْعِ ځكه به د كټ كاوه په ځائې كي جګړه پيداكيږى.

**تشريح:-** او په وړئ كي پرې كول متعين دى.نود كټ كاوه په ځائې كي به اختلاف او جګړه كيږى. مشترى به غواړى چه د ځرمنې سره جڅت كټ كوه.او بائع به غواړى چه لږه لږه وړئ پريخودلې شى.او كټ كړئ شى.او،، مفضى الى النزاع،، مفسد د بيع وى.په دې وجه د وزه په شا باندې د وړئ بيع ناجائز ده.اود وګو راختلو نه وراندې د شين فصل بيع جائز ده.

وَقَدْ صَحَّ او په صحيح طور باندې دا ثابته ده أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعِ الصُّوفِ عَلَى ظَهْرِ الْغَنَمِ، چې نبى ﷺ منع فرمائيلې ده د وزه په شا باندې د وړئ خرڅول وَعَنْ لَبَنٍ فِي ضَرْعٍ،،او په تهيونو كي شيدې خرڅول، وَعَنْ سَمْنٍ فِي لَبَنٍ ( ) او په پيوكي د غوړوخرڅولو نه منع شوې ده.

**حل اللغة:-** ① سمن،غوړى، ② لبن،شيدې\شودة، ③ ضرع،غولانځه، ④ الصوف،وړئ

**تشريح:-** دګړې په شاه باندې د وړئ خرڅول ځكه ناجائز دى چې نبى ﷺ ددې نه منع كړې ده په صحيح حديث سره ثابته ده چې نبى ﷺ د ګړې په شا باندې د وړئ خرڅولو نه منع كړې ده او په تيږ كي د پيو خرڅولو نه او د پيو كى د غوړو خرڅولو نه نومعلومه شوه چې د ګړې د شا ويخته د كټ كاوه نه وراندې خرڅول جائز نه دى

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي هَذَا الصُّوفِ او دا حديث د امام ابويوسف رحمه الله خلاف حجت دې حَيْثُ جَوَّزَ بَيْعَهُ فِيمَا يُرْوَى عَنْهُ ددوى نه روايت شوې دې چه دوى ددې بيع جائز ګرځولې ده.

**تشريح:-** علامه مرغينانى رحمه الله فرمانى چه دامام ابويوسف رحمه الله په نيز د وزه په شان باندې وړئ خرڅول جائز دى.ځكه چې وړئ مال متقوم ،منتفع به او مقدورالتسليم دې.او كوم شئ چې مال متقوم،منتفع به او مقدورالتسليم وى.د هغې بيع جائز وى.په دې وجه د وزه په شا باندې د وړي بيع جائز ده.

خود وراندينى حديث په وجه په كوم كي چې د ګړې په شا باندې د وړئ خرڅولوممانعت راغلې دې دا بيع جائز نشوه اودغه حديث د امام ابويوسف رحمه الله خلاف حجت دې.

### په چت كښې د تيراو په پلنده كښې د ګز خرڅول

قَالَ وَجِذْعٌ فِي سَقْفٍ وَذِرَاعٌ مِنْ ثَوْبٍ اود تير بيع په چت كي اود يوګز بيع په كپړه كي ناجائز ده ذَكَرَا الْقَطْعَ بائع او مشترى دواړو دكټ كاوه ذكر كړې وى أَوْلَمْ يَذْكُرَاهُ اوكه د كټ كاوه ذكرئې نه وى كړې لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّسْلِيمُ إِلَّا بِضَرَرٍ ځكه چې د ضرر نه بغير ددې سپارل ممكن نه دى.

**حل اللغة:-** ① جذع،تير ، ② سقف،چت، ③ ذراع،ګز، ④ ،ثوب،جامه

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه تير كوم چې په چت كي وى.د هغې خرڅول جائز نه دى.اود يو داسې كپړې نه يوګز خرڅول چې ددې پرې كول مضر وى.جائز نه دى.كه دواړو د كټ كاوه د ځائې ذكر كړې وى.او كه نه وى كړې.ځكه چې د ضرر نه بغير بائع لپاره ددې سپارل ممكن نه دى.او ضرر برداشت كول مقتضى دعقد نه دى.په دې وجه به دا بيع درست نه وى.

بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ مِنْ نُقْرَةِ فِضَّةٍ په خلاف ددې چې سپينو زرو توټې نه لس درهمه برابر سپين زرخرڅ كړى لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ فِي تَبْعِيضِهِ .ځكه چې ددې په ټكړې كاوه كي هيڅ ضرر نشته.

**حل اللغة:-** ① عشرة،لس، ② دراهم،روپۍ، ③ نقرة،توټې، ④ فضة،سپين زر

---

(۱) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما مرفوعاً مسنداً أخرجه الدارقطني في سننه (۱٤/۳) والبيهقي في سننه الكبرى (۵۵۵/۵) رقم (۱۰۸۵۷)_



**تشريح:-** خوكه د سپينو زرو په چم كي د لسو درهمو په اندازه سپين زر خرڅ كړى نو جائز دى ځكه چې ددې په ټكړو كولوكي څه ضررنشته.

وَلَوْ لَمْ يَكُنْ مُعَيَّنًا اوكه معين نه وى. لَا يَجُوزُ نوهم جائز نه دى لِمَا ذَكَرْنَاهُ هغه دليل په وجه كوم چې مونږ ذكركړو وَلِلْجَهَالَةِ أَيْضًا اود مبيع مجهول كيدلو په وجه

**تشريح:-** اوكه په چهت كښې تير او په كپړه كي ګز متعين نه وى نو بيع د دوې (دوه) وجهو نه جائز نه ده.يوخو په هغه وجه چې ذكرشوه.چه د ضرر نه بغير بائع لپاره مبيع سپارل ناممكن دى. دوهم په دې وجه چې په دې صورت كي مبيع مجهول دې.اود مبيع مجهول كيدلو په صورت كي بيع فاسد وى.په دې وجه به په دې صورت كي بيع جائز نه وى.

وَلَوْ قَطَعَ الْبَائِعُ الذِّرَاعَ اوكه د مشترى د فسخ كاوه نه وراندې بائع ګز كټ كړو أَوْ قَلَعَ الْجِذْعَ يا ئې تير راوښكلو قَبْلَ أَنْ يَفْسَخَ الْمُشْتَرِي د مشترى د فسخ كاوه نه مخكي يَعُودُ صَحِيحًا نو بيع به واپس صحيح كيږى لِزَوَالِ الْمُفْسِدِ ځكه چې فاسدونكې شئ زائل شو.

**حل اللغة:-** ① قطع،كټ كړل، ② الذراع،ګز، ③ قلع،راوښكل، ④ الجذع،تير

**تشريح:-** او كه دمشترى د فسخ كاوه نه وراندې بائع د كپړې نه يو ګز كټ كړلو.او ورنې كړلو.يا ئې د چهت نه يو تير راوښكلو. نودا بيع به صحيح وى.ځكه چې مفسد د بيع يعنى ضرر لرې شو.

بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ النَّوَى په خلاف ددې كه هغه هډوكى ئې خرڅ كړل فِي التَّمْرِ كوم چې په چواروكي دى أَوِ الْبَذْرَ يا هغه تخم ئې خرڅ كړو فِي الْبِطِّيخِ كوم چې په خربوزه كي دننه دې حَيْثُ لَا يَكُونُ صَحِيحًا نودا بيع به صحيح نه وى. وَإِنْ شَقَّهُمَا وَأَخْرَجَ الْمَبِيعَ اګرچه بائع دا اوشلوى ( پرې كړى).او مبيع راوباسى لِأَنَّ فِي وُجُودِهِمَا احْتِمَالًا ځكه چې ددې په موجود كيدلوكي احتمال دې.

**حل اللغة:-** ① النوى،دقجورې هډوكې، ② الشق،شلول، ③ البذر،تخم، ④ البطيخ،خربوزه

**تشريح:-** خو كه يوكس په كهجورو كي دننه هډوكى، يا په خربوزه كي دننه تخم خرڅ كړلو نودا بيع به درست نه وى.اګرچه د مشترى د بيع فسخ كاوه نه وراندې بائع چوهارې او خربوزې ماتې كړلې.او مبيع يعنى هډوكى او تخم ئې راوښكلو.ځكه چې د خرڅولو په وخت چونكه هډوكى او تخم د نظر نه غائب وو.په دې وجه ددې په وجود كي احتمال وو.چه كيدلې شى.په دې كي دننه نه وى.يا وى خو خراب وى.نو په دې صورت كي ګويا بيع بلا مبيع شوه.او بلامبيع بيع باطل وى.نو په چهواروكي دننه د هډوكو او په خربوزوكي دننه د تخم بيع باطل ده.او بيع باطل په صحيح كاوه سره صحيح كيږى هم نه.په دې وجه كه بائع دا مات كړى.هډوكى او تخم راوباسى.نو بيا به هم بيع درست نه وى.

أَمَّا الْجِذْعُ فَعَيْنٌ مَوْجُودٌ او پاتې شو شهتير ،نودا محسوس او موجود دې.

**تشريح:-** اوپاتې شو په چهت كي تير او په كپړه كي ګز،نودا ښكاره موجود وى.په دې وجه به ددې بيع باطل نه وى.بلكه د غير مقدورالتسليم كيدلو په وجه فاسد وى.اود مفسد په لرې كيدلو سره چونكه فساد لرې كيږى په دې وجه د مفسد لرې كيدلو نه روسته د تير ،اود يوګز كپړې بيع صحيح كيږى.

### په جال كښې د كېريدونكو مارغانو،ښكارونو د بيع حكم

قَالَ وَضَرْبَةِ الْقَانِصِ او( د) ضربة القانص ( بيع جائز نه ده) وَهُوَ مَا يَخْرُجُ مِنَ الصَّيْدِ بِضَرْبِ الشَّبَكَةِ مَرَّةً هغه ( ښكاور دې) چې په يو ځل جال وهلو سره حاصل شى لِأَنَّهُ مَجْهُولٌ .ځكه چې مبيع مجهول دې وَلِأَنَّ فِيهِ غَرَرًا او ځكه چې په دې كي دهوكه ده.

**حل اللغة:-** ① يخرج،راوځى، ② الصيد،ښكار، ③ الشبكة،جال ④ ،غرر،دهوكه

تشريح:- ،، ضربة القانص ،، هغه حيوان (ښكار) كوم چې په يوځل جال لګولوسره حاصل شي.د ،، ضربة القانص ،، بيع په دې وجه ناجائز ده.① چه په دې صورت كې مبيع مجهول وي.معلوم نه ده.چه په جال كې څومره ښكار نيولې كيږي.اودا هم كيدلې شي.چه هيڅ يوه چوغكه ګيره نشي.② دوهم دليل دادې.چه په دې بيع كې دهوكه ده.ځكه كيداې شي.چه په جال كي دښكار په ځاې مار، لړم، يا سپې وغيره ګير شي.

**د بيع مزابنه حكم**

قَالَ وَبَيْعُ الْمُزَابَنَةِ، فرماني.او بيع مزابنه جائز نه ده وَهُوَبَيْعُ الثَّمَرِعَلَى النَّخِيلِ او مزابنه د كجورو په ونه باندې د ميوو خرڅول بِتَمْرٍ مَجْدُوذٍ شوكيدلو چوارو په عوض په اندازه سره مِثْلِ كَيْلِهِ خَرْصًا ددې د كيل په مثل.

حل اللغة:- ① الثمر،ميوه،② النخيل،د كجورې ونه،③ تمر،كجوره،④ مجذوذ،كټ شوې

تشريح:- بيع مزابنه داده.چه د كهجورې په ونه كي لګيدلې كهجورې،د شوكيدلو كهجورو په عوض په دې طريقه خرڅې كړي.چه شوكيدلې كهجورې ئې پيمانه كړلې.يا ئې وزن كړلې.او په ونه كي چې كومې كهجورې لګيدلې دي.د هغې اندازه اوكړي.مثلا دا اندازه ئې اوكړله.چه په ونه كي لګيدلې كهجورې پنځه منه دي.نود عاقد آخر نه ددې عوض پنځه منه شوكيدلې وزن كړي.او واخلي.دا بيع ناجائز ده

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ[1] ځكه چې رسول الله ﷺ د بيع مزابنه او محاقله نه منع فرمائيلې ده. فَالْمُزَابَنَةُ نو مزابنه هغه ده مَاذَكَرْنَا كومه چې موږ ذكر كړې ده.

تشريح:- د بيع مزابنه د عدم جواز لپاره دليل دادې.چه بيع مزابنه او محاقله د جاهليت د زمانې بيوع دی.رسول الله ﷺ ددې دواړو نه منع فرمائيلې ده.په صحيحينو كي دحضرت جابر رضي الله عنه حديث دې.(نهى رسول الله ﷺ عن المزابنة والمحاقلة)

وَالْمُحَاقَلَةُ بَيْعُ الْحِنْطَةِ فِي سُنْبُلِهَا بِحِنْطَةٍ او محاقله د غنمو ددې په بمبلو( وږو) كي په اندازه سره دداسې غنمو په عوض خرڅول مِثْلِ كَيْلِهَا خَرْصًا كوم چې ددې د كيل پشان وي.

حل اللغة:- ① الحنطة،غنم،② سنبل،بمبل،③ زيادة،زياتوالي،④ خرص،اټكل

تشريح:- د بيع مزابنه په شان بيع محاقله هم ناجائز ده او بيع محاقله داده.چه په وږو( بمبلو) كي غنم خرڅ كړي.د وږو( يعنى بمبلو) نه د وتلى شوى صفا غنمو په عوض كي ، په دې طريقه چې په وږو كي د غنمو اندازه اوكړي.او صفا غنم په وزن يا پيمانه سره واخلي.مثلا دا اندازه ئې اوكړله.چه په وږو كي پنځه منه غنم دی.نود عاقد آخرنه ئې ددې عوض پنځه منه غنم وزن كړل.او وانې خستل

وَلِأَنَّهُ بَاعَ مَكِيلًا بِمَكِيلٍ مِنْ جِنْسِهِ فَلَا يَجُوزُ بِطَرِيقِ الْخَرْصِ او ځكه چې ده كيلي شئ ددې د جنس په عوض خرڅ كړې دې.اټكل سره جائز نه دي كَمَا إِذَا كَانَا مَوْضُوعَيْنِ عَلَى الْأَرْضِ، لكه( مثلاً) كه دواړه جنسه په مځكه باندې ډهير ( امبار) وي وَكَذَا الْعِنَبُ بِالزَّبِيبِ عَلَى هَذَا دغه ډول تازه انګور د اوچوانګورو په عوض په دې طريقه خرڅول.

حل اللغة:- ① العنب،انګور،② الزبيب،اوسكي،③ الموضوع،پروت،④ الارض،مځكه

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه بيع مزابنه او محاقله په دواړوكي اتحاد د جنس هم دې.او اتحاد قدر (كيل، پيمائش ) هم دې.اود اتحاد جنس او اتحاد قدر په صورت كي په اټكل او اندازې سره اخستل خرڅول جائز نه دی. ځكه چې په اندازه سره په اخستلو خرڅولوكي شبه الربوا ده.او شبه الربوا داسې حرام ده.لكه ځنګه چې حقيقت ربوا حرام ده.په دې وجه دا بيع جائز نه ده.لكه ځنګه چې كهجور يا غنم په مځكه پرتې وي.په ونه كي يا په وږوكي نه وي.نو په اندازه سره اخستل خرڅول جائز نه دی.دغه ډول كه انګور په ونه كي وي.نو ددې اندازه كول.اود هغه

[1] من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه البخارى فى الشرب والمساقاة باب ١٧ رقم ٢٣٨١ ومسلم فى البيوع رقم ٨١)_



انګورو په عوض په وزن يا كيل سره خرڅول جائز نه دی.كوم چې شوكيدلې وي.ځكه چې دا هم د مزابنه او محاقله د قبيلې ځنې دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ يَجُوزُ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ او امام شافعى رحمه الله فرمائيلي دي.چه د پنځه وسقو نه په كم كي جائز ده.

حل اللغة:- ① دون،كم،② خمسة،پنځه،③ الاوسق،جمع د وسق ده يوه پيمانه ده

تشريح:- حضرت امام شافعى رحمه الله د پنځه وسقو نه په كم كي مزابنه اومحاقله جائز ګرځولې ده.اود پنځه وسقو نه په زياتى كي ئې ناجائز ګرځولې ده.او په پنځه وسقو كي دوې (دوه) اقواله دی.يود جواز،او دوهم د عدم جواز.(عنايه)

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ الْمُزَابَنَةِ ځكه چې رسول الله ﷺ د مزابنه نه منع فرمائيلې ده وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا[1] اود عرايا اجازت ئې وركړې دې وَهُوَأَنْ يُبَاعَ بِخَرْصِهَا تَمْرًا فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ اود عرايا اجازت ئې وركړې دې او هغه داده.چه د پنځه وسقو نه كم په ونه لګيدلې چوارې په اټكل سره د شوكيدلو چوارو په عوض خرڅ كړي.

تشريح:- دحضرت امام شافعى رحمه الله دليل دا حديث دې «أن النبي ﷺ نهى عن بيع المزابنة ورخص في العرايا» عرايا د عرية جمع ده.او امام شافعى رحمه الله د عريه تفسير دا كړې دې.چه د پنځه وسقو نه كم په ونه كي لګيدلې چهوارې په اټكل سره د شوكيدلو چوارو په عوض خرڅې كړي.يعنى په ونه كي د لګيدلو چوارو اندازه اوكړي.چه دا د پنځه وسقو نه په دومره كم دی.نو ددې په عوض شوكيدلې چوارې ددې په اندازه په وزن يا پيمانه سره وركړي.نودا عريه ده.په دې حديث كي رسول اكرم ﷺ د بيع مزابنه نه منع فرمائيلې ده.اود عرايا اجازت ئې وركړې دې.نو معلومه شوه.چه د پنځه وسقو نه په كم كي په دې طريقه بيع كول ناجائز دی.

قُلْنَا: موږ وايو الْعَرِيَّةُ الْعَطِيَّةُ لُغَةً چې عريه په لغت كي د عطيه په معنى دې وَتَأْوِيلُهُ او ددې حديث تاويل دادې چه چاته عطيه وركړې شوې ده أَنْ يَبِيعَ الْمُعْرَى لَهُ مَا عَلَى النَّخِيلِ مِنَ الْمُعْرِي بِتَمْرٍ مَجْذُوذٍ دی د ونې چوارې د عطيه وركونكي په لاس د شوكيدلو چوارو په عوض خرڅ كړي وَهُوَبَيْعٌ مَجَازًا اودا مجازاً بيع ده لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ ځكه چاته چې عطيه ملاؤ شوې وه.هغه ددې ميوو مالك شوې نه وو فَيَكُونُ بِرًّا مُبْتَدَأً نو شوكيدلې ميوې وركول نوې احسان دې.

حل اللغة:- ① العطية،هديه،② تاويل،مفهوم،③ النخيل،دكجورو ونه،④ مجذوذ،كټ شوې

تشريح:- زموږ د اړخه ځواب دادې.چه د عرايا دا معنى نه ده.بلكه په لغت كي د عريه معنى عطيه ( هديه) ده.اود حديث تاويل دادې.كه يوكس په ونه كي لګيدلې ميوه كوم غريب سړي ته عطيه وركړلې اوس په دا غريب سړي هر وخت باغ ته ځي راځي.چه په دې سره ډيركرته مالك ته تكليف وي.او كله داسې هم كيږي.چه دې غريب سړي ته فورا اړتيا وي.نود باغ مالك خپل تكليف لرې كاوه دپاره، يا ددې غريب فورى اړتيا پوره كاوه لپاره غواړي.چه زه ده ته شوكيدلې ميوې وركړم.چه دده تلل راتګ بند شي.او دده اړتيا پوره شي.خو ده ته د وعده خلافئ خطره وي.ځكه چې وعده په ونه كي د لګيدلو ميوو وركاوه.نو په حديث كي بيان كړې شو.چه دا وعده خلافى نه ده.او دې ته مجازا بيع اووئيلى شو.ګنى دا بيع نه ده.ځكه چې عطيه يوه هبه وى.او په هبه كي چې معرى له (موهوب له) تركومه پورې په دې قابض نشى.تر هغه وخته پورې دې د دغه شئ موهوب نشى مالك كيدلې.ځكه چې په هبه كي قبضه بالاتفاق شرط ده.او دلته كي د موهوب له قبضه نه ده متحقق شوې.ځكه چې دا ميوې تر اوسه پورې د معرى له يعنى د هبه كونكى په ونه كي لګيدلى دی.نو هركله چې موهوب له ددې ميوو مالك نه شو.نود غيرمملوك بيع هم په حقيقت كي اونشوه.بيا چونكه كوم يوكس عطيه وركړې شوې ده.هغه اړتيا مند دې.په دې وجه هغه ته ددې ميوو اړتيا دې.نوهبه كونكى دا دوهم احسان اوكړلو.چه خپلې شوكيدلې ميوې ئې د

[1] أما النهي عن المزابنة فقد تقدم تخريجه فى الحديث السابق وأما بيع العرايا فمن حديث ابى هريرة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى المساقاة باب ١٧ رقم ٢٣٨٢ ومسلم فى البيوع رقم ٧١)_

احسان په طور ورکړلي.نو په ونه کې د لګيدلو ميوو په عوض کې شوکيدلې ميوې ورکول په حقيقت کې بيع نه ده.بلکه دا د سره عطيه او هبه ده.نود حضرت امام شافعي ﷺ دا حديث د پنځه وسقو نه په کم کې د مزابنه اومحاقله په جواز باندې پيش کول صحيح نه دی.

### د بيع بالقاء الحجر.بيع ملامسه.اود منابذه حکم

قَالَ وَلَا يَجُوزُ الْبَيْعُ بِإِلْقَاءِ الْحَجَرِ فرمائي چه په کاڼړي غورزولو سره وَالْمُلَامَسَةِ،او په لاس لګولو سره وَالْمُنَابَذَةِ اود مبيع په غورزولو بيع جائز نه ده وَهٰذِهِ بُيُوعٌ كَانَتْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ ، اودا بيوع په زمانه د جاهليت کې رائج وو.

تشريح:- ابو الحسين قدوري ﷺ فرمائي چه بيع بالقاءالحجر ،بيع ملامست،او بيع منابذه ناجائز ده.

وَهُوَ أَنْ يَتَرَاوَضَ الرَّجُلَانِ عَلَى سِلْعَةٍ أَيْ يَتَسَاوَمَانِ، او هغه دادې.چه دوې (دوه) سړو د څه سامان په بيع باندې نرخ اوکړو فَإِذَا لَمَسَهَا الْمُشْتَرِيْ نو کله چې به مشترى دې ته لاس اولګولو أَوْنَبَذَهَا إِلَيْهِ الْبَائِعُ يابه بائع مشترى ارخ ته اوغورزولو أَوْوَضَعَ الْمُشْتَرِيْ عَلَيْهَا حَصَاةً يابه مشترى په سامان باندې کاڼړې اوغورزولو لَزِمَ الْبَيْعُ نو بيع به لازم شوه فَالْأَوَّلُ بَيْعُ الْمُلَامَسَةِ نو اول بيع ملامست ده وَالثَّانِيْ الْمُنَابَذَةُ،او دوهم بيع منابذه ده وَالثَّالِثُ إِلْقَاءُ الْحَجَرِ او دريم بيع القاءحجر ده.

حل اللغة:- ① السلعة،مبيعه، ② يساوم،نرخ اچول، ③ حصاة،ګټکې ④ ،الحجر،کاڼړې

تشريح:- ① بيع بالقاءالحجر داده.چه د يوجنس څوشيان موجود وي.او بائع او مشترى دواړه د بيع په سلسله کې ګفتګو کوي.مثلاً يوځو تهانونه ئې ايخودلي وي. بائع د سامان ذکر اوکړلو.اود ثمن ذکر ئې اوکړلو . مشترى په يو تهان باندې کاڼړې اوغورزولو.نو کوم تهان به چې په کاڼړې اولګيدلو.د هغې بيع به پوره کيدله.که ددې مالك به راضي وو.او که ناراض وو.او مشترى ته به هم د رجوع کاوه اختيار نه وو.

② بيع ملامست داده.چه دوې (دوه) سړې د څه سامان په اړه کې نرخ اوکړي.نو مشترى دغه سامان ته لاس يوځې.نودغه سامان به د مشترى کيدلو.که ددې مالك به راضي وو.او که ناراض وو.

③ بيع منابذه داده.که دوې (دوه) سړو به دڅه سامان په اړه کې نرخ کولو.او مالك به د بيع لازم کاوه لپاره دغه سامان مشترى ارخ ته غورزولو.نودا بيع به لازم کيدله.دې نه روسته به مشترى ته د واپس کاوه اختيار نه وو.که مشترى به رضامند وو.اوکه راضي به نه وو.بهرحال د جاهليت په زمانه کې درې واړه قسمه د بيع رائج وو.

وَقَدْ نَهٰى عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ بَيْعِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ (١) او رسول الله ﷺ د بيع ملامسه او بيع منابذه نه منع فرمائيلې ده.

تشريح:- ① خو سردار دوعالم ﷺ بيع ملامست، اود بيع منابذه نه منع اوفرمائيله.د ملامست او منابذه نه په صراحت سره منع شوې ده.او بيع بالقاءالحجر چونکه ددې دواړو په معنى کې ده.په دا وجه دا به هم دې سره لاحق کولې شي.

وَلِأَنَّ فِيْهِ تَعْلِيْقًا بِالْخَطَرِ اوځکه چې په دې کې الامر متردد معلق کول دي.

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه بيع د تمليکاتو د قبيلې څخې ده.او تمليك چې کله په متردد (شکي) امر باندې معلق کړې شي.نو په دې کې د قمار( جوارئ) معنى پيدا کيږي.او جوارى ناجائز ده.په دې وجه به بيع هم ناجائز وي.او په دې بيوع کې د جوارئ معنى ځکه موجوديږي.چه د بيع بالقاءالجر مطلب دادې.چه بائع مشترى ته اوونيل.چې په کوم سامان تا کاڼړئ اوغورزولو.ما دغه سامان په تا خرڅ کړلو.اوس دا هم کيدلې شي.چه کاڼړئ په دغه سامان اوغورزيږي.اودا هم ممکن ده.چه دغه سامان په کاڼړى اونه لګى.اود بيع ملامست مطلب دادې.چه بائع مشترى ته اوونيل.مثلاً تا کومې کپړې ته خپل لاس يوړلو.ما دغه کپړه په تا خرڅه کړله.اود بيع منابذه مطلب دادې.چه

---

(١) من حديث أبي سعيد الخدرى ﷺ أخرجه البخارى فى اللباس باب ٢٠ رقم ٥٨٢٠ ومسلم فى البيوع رقم ٣)_



مشترى بائع ته اوونيل.چه کومه کپړه تا زما ارخ ته اوغورزوله.ما هغه واخستله.نو په دې تعليق کې چونکه د قمار معنى موندلې کيږي.په دې وجه دا بيوع ناجائز دی.

### په دوې (دوه) کپړوکښې د يو د بيع حکم

قَالَ وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ ثَوْبٍ مِنْ ثَوْبَيْنِ او په دوې (دوه) کپړوکې د يوې کپړې خرڅول جائز نه دی لِجَهَالَةِ الْمَبِيْعِ ځکه چې مبيع مجهول دې وَلَوْقَالَ عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ او که بائع اوونيل.چه په دې شرط چې مشترى ته به اختيار وى فِي أَنْ يَأْخُذَ أَيَّهُمَا شَاءَ چې په دې دواړوکې چې کوم غواړى.واخلى جَازَ الْبَيْعُ اسْتِحْسَانًا، نو استحساناً بيع جائز ده وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ بِفُرُوْعِهٖ اومونږ دا ددې فروع سره ذکر کړې ده.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه په دوې (دوه) يا درې کپړو کې د يو خرڅول. يا اخستل ناجائز دی.ځکه چې مبيع مجهول دې.اومجهول هم داسې چه،، مفضى الى المنازعه،، دې.ځکه چې کپړې د ماليت په اعتبار سره متفاوت وى.اود مبيع داسې مجهول کيدل چې دا،،مفضى الى المنازعه،، وى.مفسد د بيع وى.په دې وجه به په دې صورت کې بيع فاسد وى.خوکه بائع دا اوونيل.چه مشترى ته د يوې کپړې متعين کاوه اختيار دې. يا مشترى اوونيل.چه ماته د يوې کپړې متعين کاوه اختيار دې.نودا بيع استحساناً جائز ده.ددې تفصيلات وړاندې تير شوى دی.

### د چراګاه ( ورشو) خرڅولو او په اجاره ورکولو حکم

قَالَ وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْمَرَاعِيْ وَلَا إِجَارَتُهَا او چراګاه ( ورشو) خرڅول او ددې په اجاره باندې ورکول جائز نه دی الْمُرَادُ الْكَلَأُ او مراد ګيا ده.

حل اللغة:- ① مرعى،ورشو ② ،الكلا،ګياه، ③ الناس،خلق ④ ،ورد،واقع شوه

تشريح:- مسئله داده.چه د چراګاه ( ورشو) ګيا خرڅول،او دا په اجاره باندې ورکول جائز نه دی.علامه مرغيناني ﷺ فرمائي.چه د چراګاه نه مراد ددې ګيا ده.ځکه چې د مرعى لفظ د ګيا ځائي يعنى زمکې ته هم ونيلې شي.او ګيا ته هم ونيلې شي.او مصدر يعنى څريدلو ته هم وائي.که علامه مرغيناني ﷺ تفسير نه وې کړې.نودا وهم به کيدلو.چه د زمکې يعنى د چراګاه خرڅول،او په اجاره باندې ورکول جائز نه دی.حالانکه دا غلط دی. دزمکې بيع او ددې اجاره دواړه جائز دی.که په دې کې ګيا وى.او که نه وى.خود چراګاه ګيا خرڅول،اودا په اجاره باندې ورکول ناجائز دی.

أَمَّا الْبَيْعُ بيع خو په دې وجه (جائز نه ده) فَلِأَنَّهُ وَرَدَ عَلَى مَا لَا يَمْلِكُهُ چې دا په داسې شي باندې وراد شوه.چه ددې هيڅ څوك مالك نه دې لِاشْتِرَاكِ النَّاسِ فِيْهِ بِالْحَدِيْثِ ځکه چې په دې کې د حديث په حکم واړه خلګ شريك دی.

تشريح:- د چراګاه د ګيا خرڅول ځکه ناجائز دی.چه د چراګاه ګيا د هيڅ چا مملوك نه وى.بکله د حديث نه ثابته ده.چه په دې کې واړه انسانان شريك دی.يعنى ټولو انسانانو ته د نفع اخستلو اجازت دې.

د نبى کريم ﷺ ارشاد دې. «اَلنَّاسُ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ الْمَاءِ وَالْكَلَاءِ وَالنَّارِ» درې څيزونوکې واړه خلګ شريك دی.اوبه ،ګيا،او په اور کې .د اوبونه د نهرونو او کوهيانو اوبه مراد دی.که يوکس د وياله نه اوبه راوښکلې.او خرڅول ئې اوغوښتل.نو جائز دی.اود ګيا نه مراد خود رو( قدرتى) ګيا مراد ده.چه دا چا کرلې نه وى.( پخپله راختلې وى) نو که يوکس په اوبه خور سره ګيا راوخيجوله.نو ددې خرڅول جائز دی.اود اور نه ددې رڼرا مراد ده.يعنى د اورنه هر سړې ګرمى حاصلولې شى.او ګرميدلې شى.خوکه سروټکه اخستل غواړى. نود مالك اجازت ضرورى دې.دا غيرمملوك نه دې.بهرحال د حديث نه ثابته شوه.چه ګيا غير مملوك وى.اود غيرمملوك بيع ناجائز ده.په دې وجه د چراګاه د ګيا بيع ناجائز ده.

وَأَمَّا الْإِجَارَةُ او پاتې شوه اجاره فَلِأَنَّهَا عُقِدَتْ عَلَى اسْتِهْلَاكِ عَيْنٍ مُبَاحٍ نودا ځکه (جائز نه ده) چې دا د غيرمملوك مال په تلف کاوه باندې واقع شوه.

**حل اللغة:-** ① الاجارة،مزدوری، ② استهلاک،هلاکول، ③ عین،مال، ④ عقدت،تړلي شوې

**تشریح:-** او ګیا په اجاره باندې ورکول د دوې (دوه) وجهو نه ناجائز دی.یو خو په دې وجه چې اجاره د استهلاك منافع نوم دې.د استهلاك عین نوم نه دی.یعنی په اجاره کې مستاجر،د اجرت ورکونکې منافع تلف کوی.یعنی منافع حاصلوی.عین شئ نه تلف کوی.بلکه د عین شئ مالك اجرت ورکونکې کس وی.او دلته کې اجاره عین شئ دغیرمملوك په تلف کاوه باندې واقع کیږی.یعنی ګیا کومه عین شئ اوغیرمملوك ده.ددې په تلف کاوه باندې اجاره واقع شوې ده.

| |
|---|
| وَلَوْعَقَدَتْ عَلَى اسْتِهْلَاكِ عَيْنٍ مَمْلُوكٍ حالانکه که اجاره په یومملوك مال تلف کاوه باندې منعقد شوې و بِأَنْ اسْتَأْجَرَ بَقَرَةً په دې طریقه چې یوه غوا په اجرت باندې اخستې وه لِيَشْرَبَ لَبَنَهَا چې ددې شیدې اوڅکی لَا يَجُوزُ فَهٰذَا أَوْلٰى نو جائز به نه وه.نودا په درجه اولی ناجائز دی. |

**تشریح:-** حالانکه که اجاره د عین مملوك شئ په تلف کاوه باندې واقع کیدلې.مثلا که یوه غوا ئې د پیو څښلو لپاره په اجارت باندې اخستله.نو جائز به نه وو.نو هرکله چې عین د مملوك شئ د تلف کاوه په صورت کې اجاره ناجائز ده.نود عې شئ غیرمملوك تلف کاوه په صورت کې به په درجه اولی ناجائز وی.

## د شهدو د مچو د بیع حکم

| |
|---|
| قَالَ وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ النَّحْلِ فرمانی.اود شهدو د مچو بیع جائز نه ده وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ اودا دابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز دی قَالَ مُحَمَّدٌ يَجُوزُ إِذَا كَانَ مُحْرَزًا [1] اوامام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه کله دده په ساتنه کې جمع وی نو جائز دی وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِي اوهم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې لِأَنَّهُ حَيَوَانٌ مُنْتَفَعٌ بِهِ حَقِيقَةً وَشَرْعًا ځکه چې دا خناور حقیقة او شرعاً قابل انتفاع دې فَيَجُوزُ بَيْعُهُ په دې وجه ددې بیع جائز ده وَإِنْ كَانَ لَا يُؤْكَلُ كَالْبَغْلِ وَالْحِمَارِ اګرچه دا نه خوړلې کیږی.لکه قچر او خر وَلَهُمَا أَنَّهُ مِنَ الْهَوَامِّ اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د غسلو غالبوزه (دشهدو مچۍ) د حشرات الارض څنې دی فَلَا يَجُوزُ بَيْعُهُ كَالزَّنَابِيرِ په دې وجه د سرو (او ډمبرو) مچو پشان ددې بیع هم جائز نه ده وَالْاِنْتِفَاعُ بِمَا يَخْرُجُ مِنْهُ او نفع د هغه نه حاصلولې شی.کوم چې ددې نه اوځی لَا بِعَيْنِهِ د مچۍ د ذات نه نه حاصلیږی فَلَا يَكُونُ مُنْتَفَعًا بِهِ قَبْلَ الْخُرُوجِ نود شهدو وتلو نه وړاندې به دا خناور قابل انتفاع نه وی حَتّٰى لَوْبَاعَ كُوَارَةً فِيهَا عَسَلٌ بِمَا اّ تردې چې یوګبین چې په دې کې شهد دی.د هغه مچو سره خرڅ کړو فِيهَا مِنَ النَّحْلِ کوم چې په دې ګبین کې دی.يَجُوزُ بَيْعُهَا لَهُ، نود شهدو تابع ددې مچو بیع هم جائز ده كَذَا ذَكَرَهُ الْكَرْخِيُّ هم دغه ډول امام کرخی رحمه الله هم ذکرکړی دی. |

**حل اللغة:-** ① محرز،محفوظ، ② البغل،قچر، ③ الحمار،خر، ④ زنابیر،جمع د زنبور،سره مچۍ ⑤ کوارة،ګبین، ⑥ النحل،دشهدو مچۍ ⑦ عسل،شهد، ⑧ الهوام،حشرات الارض،میږې وغیره

**تشریح:-** دحضرت امام ابوحنیفه اوحضرت امام ابویوسف رحمهما الله په نیز د شهدو د مچو بیع ناجائز ده.

**دلیلهما:** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د شهدو مچۍ، د حشرات الارض اود زمکې د چینجو څنې دی.اود حشرات الارض بیع جائز نه ده.لکه څنګه چې د سرو(او ډمبرو) مچو،مار، لړم وغیره بیع جائز نه ده.دغه ډول د شهدو د مچو بیع هم جائز نه ده.او پاتې شو ددې قابل انتفاع کیدل،نو منتفع به مچۍ نه دی.بلکه منتفع هغه دی.کوم چې د مچونه اوځی.یعنی شهد او موم،نود شهدو او موم وتلو نه وړاندې مچۍ منتفع به نه دی.او هرکله

[1] القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی الدرالمختار (۱۲۴\۴) والبحرالرائق (۷۸\۶) والهندية (۱۱۴\۳) وفتح المعين (۵۷۱\۲) نقلاً عن القول الراجح (۳۹\۲)-



چې مچۍ منتفع به نشوې.نو مال به هم نه وی.او هرکله چې مال نه دې.نو ددې بیع به هم جائز نه وی.هم دا وجه ده.که داسې ګبین ئې خرڅ کړلو.چه په هغې کې شهد هم دی.او مچۍ هم دی.نو مچۍ به د شهدو تابع وی.او بیع به جائز ګڼړلې شي.هم دغه ډول امام کرخی رحمه الله ذکر کړی دی.

**المذهب الثانی:** او امام محمد رحمه الله فرمانی.که مچۍ دده په ساتنه کې جمع وی.نو ددې بیع جائز ده.هم دا قول د امام مالك، امام شافعی اود امام احمد رحمهم الله دې.

**دلیله:** د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه د غسلو غالبوزه (دشهدو مچۍ) داسې جاندار (سا لرونکې) دې چه په حقیقت کې هم قابل انتفاع دی.او شرعاً هم قابل انتفاع دی.حقیقتاً ځکه قابل انتفاع دی.چه د شهدو دمچو نه چې کوم شهد او موم اوځی.انسان دا حاصلوی.او په کار ئې راولی.او شرعاً ځکه قابل انتفاع دی.چه ددې نه څه شرعی مانع موجود نه دې.او کوم شئ چې حقیقتا او شرعا قابل انتفاع وی.د هغې بیع جائز وی.په دې وجه به د شهدو د مچو بیع جائز وی.اود شهدو د مچو غیرماکول اللحم کیدل د بیع منافی نه دی.لکه څنګه چې د خچر او خر غوښه شرعا غیرماکول ده.خو ددې بیع بالاجماع جائز ده.یا مثلا مځکه شرعا غیرماکول ده.خو ددې بیع جائز ده.دغه ډول د شهدو د مچو غوښه اګرچه غیرماکول ده.خو ددې بیع جائز ده.

## په پیالئ کښې د ښځې د پیو خرڅول

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ دُودِ الْقَزِّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ اود ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ریښمو د چینجو بیع جائز نه ده لِأَنَّهُ مِنَ الْهَوَامِّ ځکه چې دا هم د حشرات الارض څنې دی. |

**حل اللغة:-** ① دود،چینجې، ② القز،ریښم، ③ الهوام،حشرات الارض، ④ بیع،خرڅول

**تشریح:-** د ریښمو د چینجو بیع د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ناجائز ده.ځکه چې د ریښمو چینجی د حشرات الارض اود زمکې د چینجو څنې دی.اود حشرات الارض بیع ناجائز ده.په دې وجه د ریښمو د چینجو بیع به هم ناجائز وی.

| |
|---|
| وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ يَجُوزُ إِذَا ظَهَرَ فِيهِ الْقَزُّ اود ابویوسف رحمه الله په نیز چې کله په دې باندې ریښم ښکاره شی تَبَعًا لَهُ نو د ریښمو تابع د چینجو بیع هم جائز ده. |

**تشریح:-** اود امام ابویوسف رحمه الله مذهب دادې.که په چینجو باندې ریښم موجود وی.نود ریښمو تابع، ددې بیع هم جائزده.لکه څنګه چې د شهدو د مچو،شهدو سره خرڅول جائز دی.

| |
|---|
| وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله يَجُوزُ كَيْفَمَا كَانَ [1] اود امام محمد رحمه الله په نیز په هره طریقه خرڅول جائز دی لِكَوْنِهِ مُنْتَفَعًا بِهِ ځکه چې دا داسې خناور دې.چه ددې نه نفع اوچتولې شی. |

**تشریح:-** او امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه د ریښمو د چینجو په هرشان خرڅول جائز دی.که په دې کې ریښم ښکاره وی.او که ښکاره نه وی.ځکه چې د ریښمو چنجی منتفع به دی.اود ریښمو د چینجو بیع ته اړتیا هم دی.په دې وجه د ریښمو د چینجو بیع جائز ده.که په دې باندې ریښم وی.او که نه وی.فتوی هم د امام محمد رحمه الله په قول باندې ده.

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ بَيْضَةٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود ابوحنیفه رحمه الله په نیز د چینجو هګۍ خرڅول جائز نه دی وَعِنْدَهُمَا يَجُوزُ [2] لِمَكَانِ الضَّرُورَةِ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز د اړتیا په وجه جائز دی. وَقِيلَ أَبُويُوسُفَ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او ویلی شوی دی.چه ابویوسف رحمه الله دابوحنیفه رحمه الله سره دې. |

[1] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا فی فتح القدير (۵۸\۶) والدرالمختار (۱۲۴\۴) والكفاية (۵۹\۶) نقلاً عن القول الراجح (۴۰\۲)-

[2] القول الراجح هو هذا قول الصاحبين كذا فی الهندية (۱۱۴\۴) والدرالمختار (۱۲۴\۴) نقلاً عن القول الراجح (۴۰\۲)-

تشريح:- اود ريښمو د چينجو د هګو بيع د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ناجائز ده.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز ده.د صاحبينو رحمهما الله په نيز د عدم جواز وجه داده.چه د ريښمو د چينجو هګۍ پخپله منتفع به نه دی.بلکه کوم چينجي چي ددې نه راوځي.هغه منتفع به دی.او هغه في الحال معدوم دی.نو کوم شئ چې منتفع به دې.يعنې چينجي هغه خو معدوم دی.او کوم شئ چې موجود دې.يعنې هګۍ هغه غيرمنتفع به دی.په دې وجه د هګو بيع جائز نه ده. بعض مشائخ وائي.چه د هګو د بيع په عدم جواز کي حضرت امام ابويوسف رحمه الله د اما ابوحنيفه رحمه الله سره دې. لکه څنګه چي د ريښمو په چينجو باندې ريښم نه وی.نو په عدم جوازکي ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دې

كَمَا فِي دُودِ القَزِّ لکه څنګه چي د ريښمو په چينجوکي دی وَالحَمَامِ إِذَا عُلِمَ عَدَدُهَا .اود کونترو تعداد که معلوم وی وَأَمْكَنَ تَسْلِيمُهَا او ددې سپارل ممکن وی جَازَ بَيْعُهَا نو ددې بيع جائز ده لِأَنَّهُ مَالٌ مَقْدُورُ التَّسْلِيمِ څکه دا داسې مال دې.چه ددې سپارل ممکن دی.

حل اللغة:- ① الحمام،کونتره، ② تسليم،سپارل، ③ مقدورالتسليم،دسپارلو اوحواله کولوقدرت لرل

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دی.که د کوترو تعداد معلوم وی.او ددې سپارل ممکن وی.نو ددې بيع جائز ده.څکه چي په دې صورت کي کوترې مال مقدورالتسليم دې.اود مال مقدورالتسليم بيع جائز وی.څکه به ددې بيع هم جائز وی.

## دتختيدلي غلام د اخستو بيع

وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الآبِقِ اود تختيدلی غلام بيع جائز نه ده لِنَهْيِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْهُ (١) څکه نبی کريم ﷺ ددې نه منع فرمائيلي ده.

حل اللغة:- ① الابق،تختيدلی غلام، ② الزعم،وئيل، ③ المتعاقدين،يوبل سره عقد کونکی دوې (دوه) کسان

تشريح:- مسئله داده.چه په کامل طور د تختيدلی غلام بيع جائز نه ده.په کامل طور د تختيدلی غلام صورت دادې.چه غلام د بائع او مشتری دواړو په حق کي تختيدلې وی.اودا بيع په دې وجه ناجائز ده.① چې رسول الله ﷺ د تختيدلی غلام د بيع نه منع فرمائيلي ده.لکه چي ارشاد دې. نهى رسول الله ﷺ عن بيع الغرر وعن بيع العبد الآبق

وَلِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ اوڅکه چي بائع ددې په سپارلو باندې قادر نه دې إِلَّا أَنْ يَبِيعَهُ مِنْ رَجُلٍ مګردا چي دا دداسې سړی په لاس خرڅ کړی زَعَمَ أَنَّهُ عِنْدَهُ چي ده اووئيل.هغه ( غلام) ماسره دې لِأَنَّ المَنْهِيَّ عَنْهُ بَيْعُ آبِقٍ مُطْلَقٍ. څکه چي ممانعت کامل طور باندې د تختيدلی غلام بيع ده وَهُوَ أَنْ يَكُونَ آبِقًا فِي حَقِّ المُتَعَاقِدَيْنِ اوهغه دادې.چه د عاقدينو په حق کي تختيدلې وی وَهَذَا غَيْرُ آبِقٍ فِي حَقِّ المُشْتَرِي حالانکه دلته کي دمشتری په حق کي تختيدلې نه دې.

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه بائع ددې په سپارلو باندې قادر نه دې.او بائع چې د کوم شئ په سپارلو باندې قادر نه وی.د هغې بيع جائز نه وی.په دې وجه د تختيدلی غلام بيع جائز نه ده.خوکه څوك دا وائي.چه هغه غلام زما سره دې.نو مولا هغه هم د هغه په لاس خرڅ کړلو.نودا بيع جائز ده.څکه چې دا غلام د بائع په حق کي اګرچه تختيدلې دې.خود مشتری په حق کي تختيدلې نه دې.او هرکله چي دمشتری په حق کي تختيدلې نه دې.نودا غلام به کامل طور تختيدلې نه شمارلې کيږی.اوهرکله چي کامل طورباندې تختيدلې نه دې.نو دده بيع به هم جائز وی.څکه چي په حديث کي د آبق مطلق ( په کامل طور تختيدلی غلام) بيع ممنوع ده.

وَلِأَنَّهُ إِذَا كَانَ عِنْدَ المُشْتَرِي او څکه چي هرکله دا د مشتری سره موجود دې. انْتَفَى العَجْزُ عَنِ التَّسْلِيمِ نود سپارلو نه عاجز کيدل منتفی شو. وَهُوَ المَانِعُ حالانکه د سپارلو نه عاجز کيدل د بيع مانع وو.

(٢) من حديث أبي سعيدالخدري رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه في التجارات باب ٢٤ رقم ٢١٩٦)_



حل اللغة:- ① انتفى،ختم شو، ② التسليم،سپارل، ③ المانع،منع کونکې، ④ العجز،عاجزکيدل

تشريح:- بل دليل دادې.چه هرکله مشتری سره موجود دې.نو بائع ددې د سپارلو نه عاجز نشو.حالانکه مانع د بيع هم دغه عاجزی ده.نو هرکله چه،، عجزعن التسليم،،منتفي شو.نو بيع به هم جائز وی.

ثُمَّ لَا يَصِيرُ قَابِضًا بِمُجَرَّدِ العَقْدِ بيا به مشتری صرف په عقدسره نه قابض کيږی إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ کله چي غلام دده په قبضه کي وی وَكَانَ أَشْهَدَ عِنْدَهُ أَخَذَهُ اوده د نيولو په وخت ګواهان هم مقررکړی وو.

حل اللغة:- ① يصير،ګرځي، ② مجرد،صرف، ③ يد،قبضه، ④ اشهد،ګواه مقرر کړو

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه هرکله دغه غلام مشتری سره موجود دې. نوکه دې مشتری په دې غلام باندې خپل خان لپاره قبضه کړې وی. په دې صورت کي بالاتفاق د اخستلو په وخت به مشتری قبضه کونکې شمارلې شی.څکه که د شراء نه روسته غلام مشتری سره هلاك شو.نو بيع او قبضه به دواړه پوره وی.او په مشتری به د غلام ثمن واجب وی. څکه چې په دې صورت کي د مشتری قبضه د غصب قبضه ده.اود غصب قبضه د بيع قائم مقام وی.په دې وجه په دې صورت کي اخستلو سره مشتری قبضه کونکې شمارلې کيږی. اوکه مشتری دا مالك ته د واپس کاوه لپاره قبضه کړې وی.اود نيولو په وخت ئې په ده باندې دوې (دوه) ګواهان هم مقررکړې وی.چه دې ما دده مالك اړخ ته واپس کاوه لپاره نيولې دې. نوپه دې صورت کي صرف په عقدبيع سره مشتری قبضه کونکې نه شمارلې کيږی.

لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ عِنْدَهُ څکه چې دا غلام د مشتری سره امانت دې وَقَبْضُ الأَمَانَةِ لَا يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ البَيْعِ اود امانت قبضه د بيع د قبضې قائم مقام نه وی.

تشريح:- څکه چې د اخستلو نه وړاندې د مشتری قبضه د امانت په طور وه.څکه که غلام مولا اړخ ته د واپس کاوه نه وړاندې هلاك شو. نوګويا دا د مولا مال نه هلاك شو.يعنې په مشتری به هيڅ ضمان واجب نه وی.اود اخستلو نه روسته د مشتری قبضه، قبضهٔ ضمان وی.څکه که د اخستلو او قبضه کاوه نه روسته که مبيع مشتری سره هلاك شو.نو په مشتری باندې ضمان يعنې ثمن واجبيږی.نود اخستلو نه وړاندې په غلام باندې د مشتری قبضه،قبضه د امانت وی.اود اخستلو په وجه چې دکومې قبضې مستحق شو.هغه قبضه د ضمان ده.او قبضه د امانت چونکه غيرمضمون وی.په دې وجه دا ادنی دې.او قبضه مبيع،چونکه مضمون او لازم وی. څکه دا اقوی ده.او ادنی چونکه د اقوی قائم مقام نشی کيدلې.په دې وجه قبضهٔ امانت،د قبضهٔ مبيع قائم مقام نه وی.اوهرکله چي قبضه امانت، د قبضهٔ مبيع قائم مقام نشی کيدلې.نو قابض به د غلام په اخستلو په مبيع باندې قبضه کونکې نشی شمارلې کيدلې.بلکه مشتری به مخکې دا غلام بائع ته حواله کوی.بيا به بائع مشتری ته سپاری.( مولانا بهاری)

وَلَوْ كَانَ لَمْ يُشْهِدْ او که مشتری ګواهان نه وی جوړ کړې يَجِبُ أَنْ يَصِيرَ قَابِضًا نو ضروری ده.چه مشتری قابض شي لِأَنَّهُ قَبْضُ غَصْبٍ څکه چې دا د غصب قبضه ده.

تشريح:- اوکه غلام ئې نيولې وی.د واپس کاوه دپاره،خود نيولو په وخت ئې ګواهان مقرر کړې نه وی.نوپه دې صورت کي صرف په عقد بيع سره مشتری قبضه کونکې شمارل پکار دی.څکه چي کله ده غلام نيولو په وخت ګواه مقررنکړل.نودده دا قبضه،قبضه د غصب شوه.اود غصب قبضه ضمان وی.اود بيع په وجه چې د کومې قبضې مستحق شو.هغه هم قبضه د ضمان ده.اوقبضه د ضمان،د ضمان د قبضه قائم مقام کيدلې شی.په دې وجه په دې صورت کي مشتری صرف په عقدبيع سره قبضه کونکې شمارلې کيږی.ددې هيڅ اړتيا نشته.چه مشتری مخکې غلام بائع ته حواله کړی.بيا ئې بائع مشتری ته اوسپاری.

وَلَوْ قَالَ اوکه مشتری اووئيل هُوَ عِنْدَ فُلَانٍ چې دا غلام فلانی سره دې فَبِعْهُ مِنِّي نوته هغه زما په لاس راخرڅ کړه فَبَاعَهُ مولا دا خرڅ کړو لَا يَجُوزُ نودا جائز نه دی لِأَنَّهُ آبِقٌ فِي حَقِّ المُتَعَاقِدَيْنِ څکه چې دا د عاقدينو په حق کي تختيدلې دې

وَلِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ او ځکه چې مولا ددې په سپارلو باندې قادر نه دې.

تشریح:- او که مشتری اووئیل چه هغه غلام فلانی سره دې.نه نې زما په لاس راخرڅ کړه.مولا دده په لاس ورخرڅ کړلو.نودا بیع به هم جائز نه وی.① ځکه چې په دې صورت کې غلام د بائع اومشتری دواړو په حق کې تختیدلې دې.نودا آبق کامل شو.اود آبق کامل بیع ناجائز ده.ځکه به دده بیع ناجائز وی.② دوهم دلیل دادې چه بائع دده په سپارلو باندې هم قادر نه دې.اود غیرمقدورالتسلیم بیع چونکه ناجائز ده.ځکه به دده بیع هم ناجائز وی.

وَلَوْ بَاعَ الْآبِقَ اوکه تختیدلې غلام نې خرڅ کړو ثُمَّ عَادَ مِنَ الْإِبَاقِ بیا دې د تختیدلو نه واپس راغې لَا يَتِمُّ ذٰلِكَ الْعَقْدُ[1] نودا عقد به پوره نه وی لِأَنَّهُ وَقَعَ بَاطِلًا لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ ځکه چې محل د بیع د معدوم کیدلو په وجه دا عقد، باطل واقع شوې وو كَبَيْعِ الطَّيْرِ فِي الْهَوَاءِ لکه په هواکې د مارغه خرڅول.

حل اللغة:- ① انعدام،نشتوالې،② المحلة،محل د بیع،③ عاد،واپس شو،④ الطیر،مارغه

تشریح:- اوکه یوکس تختیدلې غلام خرڅ کړلو.بیا هغه غلام واپس راغې:نو ذکرشوې عقد به پوره نه وی.بلکه جدید عقد به ضروری وی.ځکه چې د تختیدونکی غلام عقد باطل دې.او باطل ځکه دې.چه د بیع محل،، مال مقدور التسلیم،،کیدل دی.اود بیع په وخت،،قدرت علی التسلیم،، فوت وو.نو گویا د بیع محل معدوم وو.اود محل بیع معدوم کیدلو په صورت کې بیع باطل وی.په دې وجه په دې صورت کې بیع باطل واقع شوې وه.او باطل شوې شې:هیڅ کله نشی صحیح کیدلې.ځکه به ذکرشوې بیع په غلام واپس راتلو سره صحیح نه وی.بلکه جدید بیع به ضروری وی.لکه مثلا یو مارغه په هوا کې خرڅ کړې شو.بیا بائع دا اونیولو.او په مجلس عقد کې نې مشتری ته اوسپارلو.نودا بیع به درست نه وی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود ابوحنیفه ﷫ نه نقل دی أَنَّهُ يَتِمُّ الْعَقْدُ إِذَا لَمْ يُفْسَخْ چې عقد به پوره وی.چه فسخ شوې نه وی لِأَنَّ الْعَقْدَ انْعَقَدَ لِقِيَامِ الْمَالِيَّةِ ځکه چې د مالیت قائمیدلو په وجه عقدمنعقد شوې وو وَالْمَانِعُ قَدِ ارْتَفَعَ وَهُوَ الْعَجْزُ عَنِ التَّسْلِيمِ او مانع یعنی،، عجز عن التسلیم،، ختم شو.

حل اللغة:- ① یتم،پوره کیږی،② انعقد،منعقد شوې دې،③ القیام،موجودوالې،④ ارتفع،پورته شو

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه﷫ یو روایت دادې.که د غلام واپس راتګ و نه وړاندې عقد فسخ نکړې شو.نو ذکرشوې عقد به پوره وی.ځکه چې د تختیدلی غلام مالیت قائم دې.په دې وجه عقد منعقد شوې وو.هم دا وجه ده.که مولا تختیدلې غلام آزاد، یا مدبر کړی.نو ټیك ده.نو که د تختیدلو په وجه د غلام مالیت ختمیدلو.نود مولا دې آزادول، یا مدبرکول به څنګه درست وو؟ خود بیع د جواز مانع د غلام سپارلو نه د مولا عاجز کیدل دی.خو هرکله چې غلام واپس راغې:نودا مانع هم زائل شو.او هرکله چې مانع د جواز زائل شو.نود ذکرشوی بیع په پوره کاوه کې به هیڅ اشکال نه وی.

كَمَا إِذَا أَبَقَ بَعْدَ الْبَيْعِ لکه د خرڅولو نه روسته تختیدلې ( غلام) وَهٰكَذَا يُرْوَى عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ اوهم دغه ډول د امام محمد ﷫ نه نقل دی.

تشریح:- اودا داسې ده.لکه مثلاً غلام د عقدبیع نه روسته د مشتری قبضه کاوه نه وړاندې اوتختیدلو.نودا بیع به پوره وی.هم دغه ډول د امام محمد﷫ نه نقل دی.اوکه یوکس تختیدلې غلام خرڅ کړلو.مشتری د قاضی په عدالت کې مقدمه پیش کړله.اود بائع نه نې د غلام سپارلو مطالبه اوکړله.خو بائع عاجز شو.تردې چې قاضی عقد

[1]) القول الراجح هو هذا ظاهرالرواية كذا في مجمع الأنهر(٥٨\٢) والدرالمختار(١٢٦\٤) والبحرالرائق (٧٩\٦) والهندية (١١٢\٣) نقلاً عن القول الراجح (٤١\٢)۔



بیع فسخ کړلو.اوس ددې نه روسته تختیدلې غلام واپس راغې:نو ذکرشوې بیع به پوره نه وی.بلکه بیع جدید به ضروری وی.

## په پیالۍ کښې د ښځې د پیو خرڅول

قَالَ وَلَا يَبِيعُ لَبَنَ امْرَأَةٍ فِي قَدَحٍ فرمائی.چه د ښځې شیدې کوم چې په پیالۍ کې د ی.ددې بیع هم جائز نه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ يَجُوزُ بَيْعُهُ او امام شافعی ﷫ فرمائی.چه دده بیع جائز ده لِأَنَّهُ مَشْرُوبٌ طَاهِرٌ ځکه چې دا د څښلو پاك شې دې.

حل اللغة:- ① لبن،شیدې\شودهٔ، ② قدح،پیالۍ، ③ مکرم،مصون، ④ مصون،محفوظ

تشریح:- ①د ښځې د پیوخرڅول ناجائز دی.شیدې که په تهیونوکې وی.او که په څه لوخی کې وی.ښځه که آزاده وی.او که وینځه وی. ②امام شافعی﷫ فرمائی.چه د ښځې د پیوخرڅول جائز دی.که ښځه آزاده وی.او که وینځه وی.

دلیله ﷺ د امام شافعی﷫ دلیل دادې.چه د ښځې شیدې د څښلو پاك شې دې.او کوم شې چې څښلې شی.او پاك وی.د هغې بیع جائز وی.لکه د غوا وغیره شیدې خرڅول جائز دی.ځکه د ښځې شیدې خرڅول هم جائز دی.د مشروب نه روسته نې د طاهر( پاك والی) قید اولګولو.دې نه مقصود شراب خارجول دی.ځکه چې د شرابو بیع ددې د نه پاکوالی په وجه جائز نه ده.

الجواب عن دلیله ﷺ د حضرت امام شافعی﷫ د دلیل ځواب دادې.چه د مشروب نه مراد مطلقا مشروب دی.او که د اړتیا په وخت،که ړومبی وی.نودا نه منو.ځکه چې د رضاعت د مودې نه روسته د ښځې د پیو څښل حرام دی.نود ښځې شیدې مطلقا مشروب نشو.او که ثانی وی.نو موږ منو.ځکه چې د ښځې شیدې د اړتیا په وخت، یعنی د رضاعت په موده کې د بچی غذا ده.خود اړتیا په وخت غذا کیدلو نه مال کیدل نه لازمیږی.لکه د مردار غوښه د اضطرار په حالت کې غذا ده.خو مال نه دې.نو هرکله چې د ښځې شیدې مال نه دې.نو ددې بیع به هم جائز نه وی.

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې أَنَّهُ جُزْءُ الْآدَمِيِّ چې شیدې د سړی جزء دې وَهُوَ بِجَمِيعِ أَجْزَائِهِ مُكَرَّمٌ مَصُونٌ عَنِ الْإِبْتِذَالِ بِالْبَيْعِ او سړې سره د خپلو ټولو اجزاء عزت مند اود بیع ذلت اوچتولو نه محفوظ دې وَلَا فَرْقَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بَيْنَ لَبَنِ الْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ اود ظاهرالروایة مطابق آزاده ښځه اود وینځې په پیوکې هیڅ توپیر نشته.

حل اللغة:- ① الابتذال،ذلیله کول، ② الحرة،أصیله ښځه، ③ الامة،وینځه، ④ جزء،حصه

دلائلنا ﷺ ①دښځې شیدې د سړی جزء دې.اود سړی جزء مال نه وی.او کوم شې چې مال نه وی.د هغې بیع ناجائز وی.ځکه به د ښځې د پیو بیع ناجائز وی.اود ښځې شیدې د سړی جزء ځکه دې.چه شریعت حرمت رضاعت د بعضیت، اود جزئیت په وجه ثابت کړې دې.اود سړی جزء مال ځکه نه دې.چه خلګ ددې نه مال نه حاصلوی.② دوهم دلیل دادې.چه سړې خپلو ټولو اجزاؤ سره مکرم،اود بیع په وجه د بې وقار( بې عزته) کیدلو نه محفوظ دې.او په کوم شې چې بیع وارد کیږی.هغه نه مکرم وی.اونه د بیع په وجه د بې وقاره کیدلو نه محفوظ کیږی.نو ثابته شوه.چه د ښځې د پیو بیع ناجائز ده.ګنی د ښځې شیدې کوم چې د سړی جزء دې.نه به مکرم وی.او نه به د بیع په وجه د بې وقاره کیدلو نه محفوظ وی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ يَجُوزُ بَيْعُ لَبَنِ الْأَمَةِ ([1]) اود ابویوسف ﷫ نه روایت دې.چه د وینځې شیدې خرڅول جائز دی

[1]) لكن القول الراجح هو ظاهر الرواية من عدم الجواز مطلقاً كذا في فتح القدير(٦١\٦) والعناية (٦١\٦) والبحرالرائق (٨٠\٦) والدرالمختار(١٢٦\٤) نقلاً عن القول الراجح (٤٢\٢)۔

لِأَنَّهُ يَجُوزُ إِيرَادُ الْعَقْدِ عَلَى نَفْسِهَا خکه چې د وینښې په نفس باندې بیع وارد کول جائز دی فَكَذَا عَلَى جُزْئِهَا نو هم دغه دول به ددې په جزء باندې هم( وارد کول جائز وی).

**تشریح:-** په ذکرشوې مسئله کې دحضرت امام ابویوسفؒ نه د نوادر روایت دې.چه د وینښې د پیو بیع جائز ده.اګرچه د آزادې شیدې خرڅول ناجائز دی.

**دلیل ابی یوسف** ® د وینښې په ذات باندې عقدبیع وارد کول جائز دی.نو ددې په یو جزء یعنی په پیو باندې به وارد کول هم جائز وی.ګویا امام ابویوسفؒ د وینښې جزء ددې په کل باندې قیاس کړې دې.یعنی هرکله چې د کل بیع جائز ده.نو ددې د جزء بیع به هم جائز وی.

قُلْنَا: الرِّقُّ قَدْ حَلَّ نَفْسَهَا موږ ځواب ورکوو.چه رقیت ددې په ذات کې حلول کړې دې فَأَمَّا اللَّبَنُ فَلَا رِقَّ فِيهِ او بهر حال شیدې نو په دې کې رقیت نشته لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِمَحَلٍّ خکه چې رقیت داسې محل سره مختص دې يَتَحَقَّقُ فِيهِ الْقُوَّةُ چې په دې کې داسې قوت متحقق دې الَّتِي هِيَ ضِدُّهُ کوم چې ددې ضد دې وَهُوَ الْحَيُّ اوهغه محل زندګی ده وَلَا حَيَاةَ فِي اللَّبَنِ او په پیوکې هیڅ ژوند نشته.

**حل اللغة:** ① الرق،غلامی، ② يتحقق،ثابتیږی، ③ حل،واقع شو، ④ الحی،ژوندې

**تشریح:-** زموږ د اړخه دامام ابویوسفؒ د دلیل ځواب دادې.چه رقیت د وینښې په ذات کې موجود دې.خو ددې په پیو کې موجود نه دې.خکه چې رقیت داسې محل سره مختص وی.چه په کوم محل کې ددې ضد یعنی آزادی متحقق کیږی.او آزادی داسې ځائې کې متحقق کیږی.کوم ځائې چې حیات وی.او په پیو کې هیڅ حیات نه وی.نو هرکله چې په پیو کې حیات نشته.نودا محل عتق هم نشی کیدلې.او هرکله چې محل عتق نشی کیدلې.نودا د رقیت محل هم نشی کیدلې.او هرکله چې شیدې محل رقیت نشو.نو ددې لپاره به مالیت هم نه ثابتیږی.او هرکله چې مالیت ثابت نشو.نو د وینښې شیدې خرڅول به هم جائز نه وی.اود وینښې په ذات کې چونکه رقیت موجود دې.په دې وجه دې کې مالیت هم ثابت دې.او هرکله چې مالیت ثابت دې.نو د وینښې بیع به هم جائز وی.بهرحال د جزء یعنی شیدې او کل یعنی وینښې د ذات په مینځ کې د دومره قدرې توپیر باوجود جزء په کل باندې قیاس کول درست نه دی.

## د خنزیر د ویښتو بیع

📖 قَالَ: وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ شَعْرِ الْخِنْزِيرِ ود خنزیر د ویښتو بیع هم ناجائز ده لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ خکه چې خنزیر نجس العین دې فَلَا يَجُوزُ بَيْعُهُ إِهَانَةً لَهُ نو ددې د سپکوالی لپاره ددې بیع جائز نه ده.

**حل اللغة:-** ① شعر،ویښته، ② الاهانة،سپکوالې، ③ الانتفاع،فائده اخستل، ④ الخرز،ګنډل

**تشریح:-** د ټولو امامانو اتفاق دې.چه د خنزیر د ویښتو بیع ناجائز ده.خکه چې خنزیر پخپل ذات سره ناپاک اونجس دې.اود نجس العین د توهین او تذلیل په لحاظ ددې بیع جائزنه ده.په دې وجه د خنزیر د ویښتو بیع ناجائز ده.

وَيَجُوزُ الِانْتِفَاعُ بِهِ لِلْخَرْزِ لِلضَّرُورَةِ او ددې نه د ګنډلو په ذریعه د اړتیا په وجه نفع اوچتول جائز ده فَإِنَّ ذَلِكَ الْعَمَلَ لَا يَتَأَتَّى بِدُونِهِ خکه چې دا کار د خنزیر د ویښتو نه بغیر نه حاصلیږی.

**تشریح:-** خود څپلو (پیزار) وغیره ګنډلو لپاره ضرورة د خنزیر د ویښتو نه نفع حاصلول جائز دی.خکه چې عادة په دې کار کې د خنزیر ایښته استعمالیږی.خو که د خنزیر د ویښتونه علاوه دا کار چلیدلې شی.نو بیا د خنزیر د ویښتو استعمالول جائز نه دی.( فتح القدیر)

وَيُوجَدُ مُبَاحَ الْأَصْلِ او(چونکه) دا ایښته په غیرمملوک طور باندې ملاویږی فَلَا ضَرُورَةَ إِلَى الْبَيْعِ په دې وجه ددې د خرڅولو هیڅ اړتیا نشته



**تشریح:-** دا عبارت دیو سوال ځواب دې.هغه دا چې د صاحب هدایهؒ په قول هرکله ضرورة د خنزیر د ویښتو نه نفع اخستل جائز دی.نو ددې بیع هم جائز کیدل پکار دی.

**الجواب** ® ددې ځواب دادې.چه د خنزیر ایښته مباح الاصل دی.یعنی مفت ملاویږی.په دې وجه ددې د اخستلو خرڅولو هیڅ اړتیا نشته.خوکه د اخستلو نه بغیر نه ملاویږی.نو ددې اخستل به هم جائز وی.لکه چې فقیه ابوالليثؒ فرمائیلی دی.

وَلَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ الْقَلِيلِ اوکه په لږو اوبوکې د خنزیر ایښته پریوتلو أَفْسَدَهُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ[1] نود ابویوسفؒ په نیز اوبه خرابوی.

**تشریح:-** صاحب دهدایهؒ فرمائی.که د خنزیر ویښته په داسې اوبوکې اوغورزیږی.چه نه دا اوبه جاری وی.او نه ده در ده (لس په لسه) وی.یعنی په ماء قلیل کې اوغورزیږی.نود حضرت امام ابویوسفؒ په نیز به اوبه ناپاک شی.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ لَا يُفْسِدُهُ اود امام محمدؒ په نیز دا نه خرابوی لِأَنَّ إِطْلَاقَ الِانْتِفَاعِ بِهِ دَلِيلُ طَهَارَتِهِ خکه چې ددې نه د نفع اوچتولو اجازت ددې د پاکوالی دلیل دې.

**تشریح:-** اود امام محمدؒ په نیز به ناپاک نه وی.د امام محمدؒ دلیل دادې.چه د خنزیر د ویښتو نه د نفع حاصلولو اجازت ورکول، ددې دپاک کیدلو دلیل دې.اود پاک شی په غورزیدلو سره اوبه نه ناپاکه کیږی.په دې وجه د خنزیر ایښته غورزیدلو سره به اوبه نه ناپاکه کیږی.

وَلِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود ابویوسفؒ دلیل دادې.أَنَّ الْإِطْلَاقَ لِلضَّرُورَةِ چې د انتفاع اجازت د اړتیا په وجه دې فَلَا يَظْهَرُ إِلَّا فِي حَالَةِ الِاسْتِعْمَالِ نود حالت استعمال نه علاوه کې به دا خبره نه ښکاره کیږی وَحَالَةُ الْوُقُوعِ تُغَايِرُهَا او په اوبوکې د پریوتلو حالت ددې نه مغایر دې.

**تشریح:-** د امام ابویوسفؒ دلیل دادې.چه د خنزیر په ویښتو سره د نفع حاصلولو اجازت د اړتیا په لحاظ سره ثابت دې.او کوم شئ چې ضرورة ثابت وی.د هغې حکم نورو اړخ ته نه متعدی کیږی.په دې وجه د خنزیر د ویښتو اړتیا د ګنډلو په کار کې به خو ښکاره وی.خو ددې نه په علاوه کې به نه ښکاره کیږی.او په اوبو کې د غورزیدلو حالت چونکه د استعمال د حالت نه مغایر دې.په دې وجه په اوبوکې د غورزیدلو په حالت کې به ددې اړتیا او طهارت نه ښکاره کیږی.او هرکله چې په دې حالت کې ددې طهارت ښکاره نشو.نو ددې په اوبوکې غورزیدلو سره به اوبه ناپاکه کیږی.

**السوال** ® د ښځې د پیو په مسئله کې د دې خرڅ ته د بنیادم اهانت وئیلې شوې وو اود دلته د خنزیر په مسئله کې د خنزیر د ویښتو خرڅولو ته عزت وئیلې شوې دې نو یو شئ څنګه سبب د اهانت او سبب د عزت کیدای شی.

**الجواب**® فعل واحد یو شی اړخ ته نسبت کاوه سره اهانت او بل شی اړخ ته نسبت کاوه سره اعزاز او اکرام کیدلې شی.مثلاً بادشاه جاروکش ته اووئیل.چه ته هم خلګ وسره په دربارکې کینه.نود بادشاه دا وئیل ددې جاروکش لپاره انتهائی اکرام او اعزاز دې.او که قاضی ته اووائی.چه ته په دربارکې خلګو سره دربارکې مه کینه.نودا وئیل د قاضی لپاره اهانت دې.اوګورئ.یو فعل د یو لپاره اعزاز او دبل لپاره آهانت دې.نودغه ډول دلته هم د ښځې د پیو خرڅول اهانت اود خنزیر د ویښتو خرڅول عزت دې ( فتح القدیر)

## د انسان د ایښتو بیع.او ددې نه د انتفاع حکم

📖 وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ شُعُورِ الْإِنْسَانِ وَلَا الِانْتِفَاعُ بِهَا ود انسان ویښته خرڅول او ددې نه نفع اخستل جائز نه دی.

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبی یوسف رحمه الله کذا فی فتح القدیر(۶۲۱۶) والعنایة (۶۲۱۶) والکفایة (۶۲۱۶) والدرالمختار(۱۲۷۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۴۳۱۲)-

**حل اللغة:-** ① **شعور،**جمع د شعر ،ويخته، ② **الانتفاع،**فائده اخستل، ③ **مكرم،**معزز ، ④ **المتذل،**سپك

**تشريح:-** مسئله داده.چه د سړي د ويختو خرڅول،او ددې نه نفع حاصلول، جائز نه دى.

| **لِأَنَّ الْآدَمِيَّ مُكَرَّمٌ** ځكه چې سړې مكرم دې **لَامُبْتَذَلٌ** ذليل او بې وقاره ( سپك) نه دې **فَلَايَجُوْزُاَنْ يَكُوْنَ شَيْءٌ مِنْ اَجْزَائِهِ مُهَانًا وَمُبْتَذَلًا** په دې وجه ددې په اجزاؤكې د يوجزء سپكوالې او بې عزتى كول جائز نه دى. |
|---|

**تشريح:-** داځكه ناجائز دى چې سړې مكرم دې بې وقاره او ذليل نه دې،او كوم شئ چې معزز او مكرم وي.د هغه په اجزاؤ كې د يوجزء تذليل او بې قدري كول جائز نه دى.اود ويختو خرڅول،او ددې نه د نفع په حاصلولو كې د ويختو تذليل او توهين دې.په دې وجه د سړي د ويختو نه خرڅول جائز دى.اونه ددې نه نفع حاصلول جائز دى.ددې تائيد د رسول الله ﷺ د قول «لعن الله الواصلة والمستوصلة» نه هم كيږي.

| **وَقَدْ قَالَ: عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى. **لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاصِلَةَ** چې الله تعالى دې په ويختو( خپل خان ته لګونكى) **{وَالْمُسْتَوْصِلَةَ}** ([1])او بل ته لګونكى باندې لعنت اوكړي. |
|---|

**تشريح:-** ①واصله: داده.چه د يوې ښځې ايخته واخلى.اود بلې ښځې په ويختوكې ئې كوځيو كړي. ② ،،مستوصله،، داده.چه په خپلو ويختوكې د كوځيو كاوه حكم اوكړي.دبيع د عدم جواز دليل دا دې چې رسول الله ﷺ په دواړو باندې د لعنت بددعا كړې ده.نو ثابته شوه.چه د ښځو د ويختو نه نفع اخستل جائز نه دى.او هركله چې نفع اخستل جائز نه دى.نو خرڅول به په درجه اولى جائز نه وي.

| **وَاِنَّمَا يُرَخَّصُ** اود هغه ويختو لګولو اجازت دې **فِيْمَايُتَّخَذُ مِنَ الْوَبَرِ** چې د اوښانو وغيره نه واخلى **فَيُزِيْدُ فِيْ قُرُوْنِ النِّسَاءِ وَذَوَائِبِهِنَّ** اود ښځو كونځو او زلفو كې زياتوالې راولى. |
|---|

**حل اللغة:-** ① **يرخص،**اجازت وركولې شى، ② **قرون،**جمع د قرن،كونسى، ③ **الزوائب،**جمع د زانب، زلفان

**تشريح:-** البته د اوښان، چيلو وغيره ايخته د ښځو په ويختو كې كوځيو كول جائز دى.دغه ډول د ښځو د ويختو په جړوكې ايخته كوځيو كولې شى.د ښځو د ويختو ګڼروالى او زياتولو دپاره.اود ښځو په زلفوكې لګولې شى. لپاره ددې چې دا اوږده شى.

### د مردار د څرمنې د بيع حكم

| 🕮 **قَالَ وَلَايُبَاعُ جُلُوْدُ الْمَيْتَةِ قَبْلَ اَنْ تُدْبَغَ** مردار څرمنه د رنګ كاوه نه وړاندې خرڅول جائز نه دى **لِاَنَّهٗ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهٖ** اود.ځكه چې دا غيرمتفع به ده. |
|---|

**حل اللغة:-** ① **جلود،**جمع د جلد، دځاروى څرمن، ② **الميتة،**مرداره، ③ **الدباغة،**رنګ كول، ④ **منتفع به،**قابل نفع

**تشريح:-** مسئله: د مردار د غيرمدبوغ څرمنې بيع ناجائز ده.ځكه چې د دباغت( رنګ) نه وړاندې د مردار څرمنه د نجس كيدلو په وجه ناقابل انتفاع وي.

| **قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** رسول الله ﷺ فرمائيلى دى. **{لَاتَنْتَفِعُوْا مِنَ الْمَيْتَةِ بِاِهَابٍ}** ([2]) چې د مردار كچه څرمنې نه نفع مه اخلئ: |
|---|

**تشريح:-** دليل د د رسول الله ﷺ ارشاد دې. «لا تنتفعوا من الميتة باهاب» چې تاسود مرداري د اهاب نه فائده مه اخلئ:

| **وَهُوَاسْمٌ لِغَيْرِ الْمَدْبُوْغِ** او،، اهاب،، دبې رنګه څرمنې نوم دې. **عَلٰى مَاعُرِفَ فِيْ كِتَابِ الصَّلَاةِ** لكه څنګه چې په كتاب |
|---|

(۱) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاري في اللباس باب ۸۳ رقم ۵۹۳۷ ومسلم في اللباس والزينة رقم ۱۱۹ وأبوداود في الترجل باب ۵ والترمذي في اللباس باب ۵۲ والنسائي في الزينة باب ۲۲ وابن ماجه في النكاح باب ۵۲ وأحمد في المسند(۲۱/۲)_

(۱) تقدم تخريجه في كتاب الطهارة)_



| الصلاة كې تيرشو. |
|---|

**تشريح:-** او اهاب هغه څرمنې ته وائى.چه هغې له رنګ نه وى وركړې شوې.او كوم شئ چې شرعا غير منتفع به وى. اونجس وى.د هغې بيع جائز نه وى.په دې وجه د مردار د كچه (بې رنګه) څرمنې بيع ناجائز ده.

| **وَلَابَاْسَ بِبَيْعِهَا وَالْاِنْتِفَاعِ بِهَا بَعْدَ الدِّبَاغِ** ود رنګ كاوه نه روسته ددې په خرڅولو او ددې نه په نفع اخستلوكې هيڅ باك نشته. |
|---|

**حل اللغة:-** ① **لاباس،**څه خرج نشته، ② **الانتفاع،**فائده اخستل ③ **الدباغ،**رنګ كيدل ④ **طهرت،**پاكه شوه

**تشريح:-** البته د رنګ كاوه نه روسته ددې خرڅول هم جائز دى.او ددې نه نفع اخستل هم جائز دى.

| **لِاَنَّهَا قَدْ طَهُرَتْ بِالدِّبَاغِ،** ځكه چې په رنګ كاوه سره دا پاكه شوې ده **وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِيْ كِتَابِ الصَّلَاةِ** اوموږ دا په كتاب الصلاة كې ذكر كړى دى. |
|---|

**تشريح:-** دليل دا دې چې د رنګ كاوه په وجه هركله نجس رطوبات زائل شى.نو څرمنه پاكيږى.لكه څنګه چې په ذبح كاوه سره څرمنه پاكيږى.ددې مسئلې پوره تفصيل په كتاب الطهارة كې تيرشوې دې.

### د مردار د نورو اجزاؤ د بيع اود انتفاع حكم

| **وَلَابَاْسَ بِبَيْعِ عِظَامِ الْمَيْتَةِ وَعَصَبِهَا وَصُوْفِهَا وَقَرْنِهَا وَشَعْرِهَا وَوَبَرِهَا** اود مردار هډوكى دده پټې او دده وړۍ،او دده ښكرې، دده ايخته،اود مردار اوښ ايخته خرڅول **وَالْاِنْتِفَاعِ بِذٰلِكَ كُلِّهٖ** او ددې ټولونه نفع حاصلولوكې هيڅ باك نشته. |
|---|

**حل اللغة:-** ① **عظام،**جمع د عظم، هډوكې، ② **الميتة،**مرداره، ③ **عصب،**پټې، ④ **صوف،**وړۍ ⑤ **قرن،** ښكر، ⑥ **شعر،**ويخته، ⑦ **وبر،**د اوښ ويخته، ⑧ **الانتفاع،**فائده اخستل

**تشريح:-** مسئله د مردار هډوكى، ددې كښت اود مردارې وزه وړۍ،او ښكرې،اود نورو مردارو ځناورو ايخته اود مردار اوښ ايخته خرڅول،او ددې ټولو نه نفع حاصلولوكې هيڅ باك نشته.

| **لِاَنَّهَا طَاهِرَةٌ** ځكه چې دا واړه شيان پاك دى. **لَايَحِلُّهَا الْمَوْتُ لِعَدَمِ الْحَيَاةِ** په دې كې د حيات ( ژوند) نه كيدلو په وجه مرګ حلول نه دې كړې **وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ** او موږ دا وړاندې بيان كړى دى. |
|---|

**حل اللغة:-** ① **يحل،**داخليږى، ② **الحياة،**ژوند ، ③ **السباع،**جمع د سبع، درنده، ④ **عظم،**هډوكې

**شريح:-** دليل دا دې چې دا ټولو شيان پاك دى.او پاك ځكه دى.چه مرګ په دې كې حلول نه كوى.او مرګ په دې كې ځكه حلول نه كوى.چه په دې كې حيات ( ژوند) نه وى.ددې تفصيل هم په كتاب الطهارة كې بيان شوې دې.

| **وَالْفِيْلُ كَالْخِنْزِيْرِ نَجِسُ الْعَيْنِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اود امام محمد رحمه الله په نيز هاتهى د خنزير پشان نجس العين دې **وَعِنْدَهُمَا بِمَنْزِلَةِ السِّبَاعِ** ([1])اود شيخينو رحمهما الله په نيز د درنده ګانو ( شلونكو ځناور) په مرتبه كې دې **حَتّٰى يُبَاعُ عَظْمُهٗ وَيُنْتَفَعُ بِهٖ** تردې چې ددې هډوكى خرڅولې شى.او ددې نه نفع اخستلې شى. |
|---|

**تشريح:-** حضرت امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى.چه هاتهى د خنزير پشان نجس العين دې.ددې څرمنه نه په ذبح كاوه سره پاكيږى.او نه په رنګ كولوسره پاكيږى.او شيخين رحمهما الله فرمائى.چه هاتهى د درنده ګانو ( ماتونكو ځناورو) په حكم كې دې.لهذا ددې جوته او ددې غوښه ناپاكه ده.د هاتهى ذات ناپاك نه دې.نو د دې هډوكى وغيره خرڅول،او ددې نه نفع حاصلول جائز دى.او پخپله هاتهى باندې سوارلى كول،او وزن باړول جائز دى.او په حديث

[1]) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٦\٤٢٦) والبحر الرائق (٦\٨١) وردالمحتار(٤\١٢٥)نقلاً عن القول الراجح (٢\٤٤)-

کي دی.چه نبی کریمﷺ د حضرت فاطمه رضی الله عنها لپاره د هاتهي د غابښونو دوي (دوه) ګومنځي اخستي وي.(فتح القدير) ددې حديث نه معلومېږي. چې هاتهي د خنزير پشان نجس العين نه دې.

**د دوهم چت والا خپله بالاخانه خرڅولو حکم**

قال **وَإِذَا كَانَ السُّفْلُ لِرَجُلٍ** فرماني.اوکله چې د يوکس لاندې کور وی **وَعُلُوُّهُ لِآخَرَ فَسَقَطَا** او په دې باندې بالاخانه (دوهم چت) د بل کس وی بيا دواړه پريوتل. **أَوْ سَقَطَ الْعُلُوُّ وَحْدَهُ** يا صرف بالاخانه پريوتله **فَبَاعَ صَاحِبُ الْعُلُوِّ عُلُوَّهُ** بيا بالاخاني والا خپل حق تعلی خرڅ کړو **لَمْ يَجُزْ** نو جائز نه دی.

حل اللغة:- ① السفل،د کور لاندې منزل، ② رجل،سړی، ③ علو،د کور پورته منزل، ④ سقط،راوغورزيدو

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړي د کور د لاندينۍ برخې (حصې) مالك وی.او دوهم سړي په دې باندې د تعمير شوی بالاخانې مالك وی.او بيا دواړه راوغورزيږی.يا صرف بالاخانه راوغورزيږی.بيا د بالاخانې والا خپل حق تعلی يعنی د بالاخانې جوړولو خپل حق خرڅ کړي.نودا بيع ناجائز ده.

**لِأَنَّ حَقَّ التَّعَلِّي لَيْسَ بِمَالٍ** خکه چې د بالاخانې حق مال نه دې **لِأَنَّ الْمَالَ مَا يُمْكِنُ إِحْرَازُهُ** خکه چې مال هغه وی.چه ددې محفوظ کول ممکن وی **وَالْمَالُ هُوَ الْمَحِلُّ لِلْبَيْعِ** حالانکه مال د بيع محل وی.

حل اللغة:- ① التعلی،پورته والې، ② الاحراز،محفوظ کيدل، ③ الشربه،اوبه خور، ④ الارض،مځکه

تشريح:- دليل دا دې چې په دې صورت کې مبيع حق تعلی دې.او حق تعلی مال نه دې.خکه چې حق تعلی هوا او فضاء سره متعلق وی.او هوا مال نه دې.اود هوا مال نه کيدل خکه دی.چه مال هغه وی.چه په هغې باندې قبضه کول.او ددې محفوظ کول ممکن وی.نود هوا مال نه کيدل ثابت شو.او هرکله چې هوا مال نه دې.نو کوم چې ددې سره متعلق وی.يعنی حق تعلی،هغه به هم مال نه وی.او هرکله چې حق تعلی مال نه دې.نو ددې خرڅول به هم جائز نه وی.خکه چې د بيع محل مال وی.غيرمال نه وی.خوکه د بالاخانه اورانيدلو نه وړاندې خرڅه کړې شی.نو جائز ده.خکه چې په دې صورت کې مبيع حق تعلی نه دې.بلکه د بالاخانې عمارت دې.او عمارت باليقين مال نه دې.په دې وجه ددې بيع جائزده.او که د مشتری قبضه کاوه نه وړاندې بالاخانه ورانه شوه.نو بيع به باطل وی.خکه چې د قبضه نه وړاندې مبيع هلاك شوې دې.اود مبيع د قبضه کاوه نه وړاندې که مبيع هلاك شی.نو بيع باطليږی.په دې وجه به په دې صورت کې بيع باطل وی.

**بِخِلَافِ الشِّرْبِ** په خلاف د شرب،(د پټی د اوبه کولوحق **حَيْثُ يَجُوزُ بَيْعُهُ تَبَعًا لِلْأَرْضِ بِاتِّفَاقِ الرِّوَايَاتِ**)چه ددې خرڅول د زمکې تابع په اتفاق د رواياتو جائز ده **وَمُفْرَدًا فِي رِوَايَةٍ** او جلا خرڅول هم په يو روايت کې جائز ده **وَهُوَ اخْتِيَارُ مَشَايِخِ بَلْخٍ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ** هم دا د بلخ د مشانخو مختار مذهب دې **لِأَنَّهُ حَظٌّ مِنَ الْمَاءِ** خکه چې دا د اوبو يوه برخه ده.په دې **وَلِهٰذَا يُضْمَنُ بِالْإِتْلَافِ** وجه په هلا کاوه سره مضمون وی. **وَلَهُ قِسْطٌ مِنَ الثَّمَنِ** اود شرب (د اوبه خورحق) د ثمن يوه برخه وی **عَلَى مَا نَذْكُرُهُ فِي كِتَابِ الشِّرْبِ** لکه چې دا به موږ په کتاب الشرب کې ذکرکړو.

حل اللغة:- ① الاختيار،غوره مذهب اختيارول، ② مفرد،خانله، ③ حظ،حصه، ④ الاتلاف،هلاکول

تشريح:- په دې عبارت کې د يو سوال خواب دې.هغه دا چې شرب (په پټی کې د اوبو ورکولوحق) د زمکې حق دې،ددې باوجود ددې بيع جائز ده.نو که د زمکې تابع شی.نود ټولو رواياتو موافق جائز ده.او چې خانله وی.يعنی د زمکې نه بغير صرف د شرب خرڅول هم په يو روايت کې جائز دی.اوهم دا د بلخ د مشانخو مختار مذهب دې.نو لکه څنګه چې د شرب خرڅول جائز دی.په داسې حال کې چې دا د زمکې حق دې.دغه ډول حق تعلق، يعنی د بالاخانه جوړولو حق خرڅول هم جائز کيدل پکار دی.يا لکه څنګه چې د حق تعلی خرڅول ناجائز دی.دغه ډول د شرب خرڅول هم ناجائز پکار وو.د دواړو په مينځ کې څه توپير دې.سره ددې چې دواړه د حقوق د قبيلې څنې دی؟ ددې خواب دادې.چه شرب د اوبو د يوې برخې (حصې) نوم دې.او اوبه عين مال دې.نوکه يو کس شرب



هلاك کړله.نو په هلاکونکی به ددې ضمان واجب وی.اود هلا کاوه صورت دا يعنی د اوبو هم دا مخصوص برخه هلاك کړله.نو په هلاکونکی به ددې ضمان واجب وی.اود هلا کاوه صورت دا دې.چه يو سړی خپله مځکه د بل په شرب سره سيراب (اوبه) کړله.نو ددې زمکې په مالك باندې د شرب والا لپاره ضمان واجب وی.او ضمان په اموال هلاکونکو باندې لازميږی.د غيراموال په هلا کاوه سره ضمان نه لازميږی.نو ثابته شوه.چه شرب يعنی د اوبوحصه مال دې.دغه ډول د شرب په مقابله کې د ثمن يوه برخه وی.مثلا يوسړي د يو کس نه دده مځکه اود زمکې شرب په زرو روپو کې واخستله.بيا دده شرب مستحق شو.يعنی يو دريم کس خپل استحقاق ثابت کړلو.او شرب ئې واخستلو.نو د مشتری څخه به د شرب د برخې (حصې) ثمن کمولې شی.ددې نه معلومه شوه.چه د شرب په مقابله کې ثمن راځی.اود کوم شی په مقابله کې چې ثمن راځی.هغه شی د مال د قبيلې څنې وی.نو ثابته شوه.چه شرب مال دې.اود مال بيع جائز وی.خکه به د شرب بيع جائز وی.او باقې شوحق تعلق،نو وړاندې تيرشوی دی.چه هغه مال نه دې.په دې وجه به ددې بيع درست نه وی.د شرب پوره تفصيل په کتاب الشرب کې ذکر کړو.

سوال@دلته کي يو سوال پاته کيږی.هغه داچه د شرب بيع په دې وجه جائز ګرځولې شوې ده.چه شرب د اوبو د يوې برخې (حصې) نوم دی.نو ګويا چې بيع د اوبو اوشو.اوس که د اوبو په ګزرګاه (نالئ يا لختي) کې او به موجود نه وی.نو ددې بيع ناجائز کيدل پکار وو.خکه چې د معدوم بيع ناجائز وی.حالانکه ددې بيع جائز ده.

الجواب@دادې.چه د اړتيا په وجه د اوبو وجود فرض شوې دې.او ددې بيع جائز ګرځولې شوې ده.لکه څنګه چې په بيع سلم کې کيږی.او استصناع يعنی په سانې (ايډوانس) ور کاوه کې يوڅيز جوړولو کې مبيع معدوم وی.خو ددې باوجود بيع درست وی.نو هم دغه ډول که فی الوقت اوبه موجود نه وی.نو ددې وجود فرض ګرځولې شی.اود اړتيا په لحاظ سره د شرب بيع جائز ګرځولې شوې ده.

**د لارې او لختي د بيع او هبه حکم**

قال **وَبَيْعُ الطَّرِيقِ وَهِبَتُهُ جَائِزٌ** فرماني.اود لارې خرڅول او ددې هبه کول جائز دی **وَبَيْعُ مَسِيلِ الْمَاءِ وَهِبَتُهُ بَاطِلٌ** اود اوبو د تللو لاره خرڅول او ددې هبه کول باطل دی. **وَالْمَسْأَلَةُ تَحْتَمِلُ وَجْهَيْنِ**:دا مسئله د دوي (دوه) صورتونو احتمال لري **بَيْعُ رَقَبَةِ الطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ**،د عين لارې،او عين مسيل (نالئ يا لختي) خرڅول **وَبَيْعُ حَقِّ الْمُرُورِ وَالتَّسْيِيلِ** او په لاره د تيريدلو او په نالئ (لختي) کې د اوبو جاری کاوه حق خرڅول.

حل اللغة:- ① الطريق،لاره، ② مسيل،هغه لارچه اوبه کې بهيږی، ③ المرور،تيريدل، ④ السبيل،لختي

تشريح:- مسئله داده.چه د لارې خرڅول،او ددې هبه کول جائز دی.اود اوبو روانولو ځانې خرڅول،او ددې هبه کول ناجائز دی.علامه مرغينانیؒ فرماني.چه ددې مسئلې دوي (دوه) صورتونه دی.① يو عين طريق (د لارې) او عين مسيل (د نالئ يا لختي) خرڅول،په کومه چې انسان تيريږی.او په کوم چې اوبه بهيږی.ګويا چې د طريق نه مراد د سړی ګزرګاه،اود مسيل نه مراد د اوبوګزرګاه ده.② دوهم داچه د طريق نه مراد حق مرور يعنی په لاره باندې د تيريدلو حق، او د مسيل نه مراد د اوبو بهيولو حق خرڅول دی.که رومبې صورت وی.يعنی عين طريق اود تيريدلو ځانې خرڅول،نودا جائز دی.او عين مسيل يعنی د اوبو روانولو ځانې خرڅول ناجائز دی.

**لِأَنَّ الْأَوَّلَ** نوکه اول وی. **فَوَجْهُ الْفَرْقِ بَيْنَ الْمَسْأَلَتَيْنِ** ود دواړه مسئلو په منځ کې وجه د توپير داده **أَنَّ الطَّرِيقَ مَعْلُومٌ** چې لاره يو معلوم شئ دې **لِأَنَّ لَهُ طُولًا وَعَرْضًا مَعْلُومًا** خکه چې ددې اوږدوالې او پلن والې معلوم دې.

حل اللغة:- ① طول،اوږدوالې، ② العرض،پلنوالې، ③ المسيل،لختي، ④ الشغل،بوخت کيدل

تشريح:- په دې دواړو صورتونو کې وجه د توپير داده.چه لاره يو معلوم شئ دې.خکه چې د لارې طول اوعرض معلوم وی.که د لارې طول او عرض (اوږدوالې او پلن والې) بيان کړې شو.بيا خو معلوم کيدل ښکاره دی.او که بيان نکړې شو.بيا هم معلوم دی.خکه چې د لارې طول اوعرض شرعا مقدر دې.په دې طريقه چې د لارې پلن والې د کور د لوی دروازې د پلنوالی برابر وی.اود لارې اوږدوالې دا وی.چه دا عامې لارې سره ملاؤ شی.نو هرکله چې

لاره يعنې ګزرګاه معلوم ده.او مشاهده محسوس ده.نو په دې کې به هيڅ نزاع نه واقع کيږي.او هرکله چې خه نزاع نه واقع کيږي.نو بيع به هم جائز وي.

وَأَمَّا الْمَسِيلُ فَمَجْهُولٌ او مسيل ( د اوبو بهيولو لختې) يو مجهول شئ دې لِأَنَّهُ لَا يُدْرَى قَدْرُ مَا يَشْغَلُهُ مِنَ الْمَاءِ ځکه دا معلومه نه ده.چه اوبه به څومره قدرې ځائې ګيروي.

تشريح:- او پاتې شو د اوبو بهيدلو ځائې،نودا مجهول دې.ځکه چې د طول اوعرض په اعتبار سره دا معلوم نه دې.چه اوبه به څومره ځائې راګيروي.او هرکله چې د اوبو بهيدلوځائې يعنې طول اوعرض معلوم نه دې.نو مبيع مجهول شو.اود مبيع مجهول کيدلو په صورت کې بيع ناجائز وي.په دې وجه به په دې صورت کې بيع ناجائز وي.خودا خيال ساتل پکار دی.چه د بيع نه جائز کيدل، هغه وخته پورې وي.چه کله پورې د ځائې طول اوعرض بيان شوی نه وي.اود اوبو بهيدلو حدود او ددې ځائې معلوم وي.نو ددې بيع هم جائز ده.( قاضی خان)

وَإِنْ كَانَ الثَّانِي او که دويم( صورت) وی فَفِي بَيْعِ حَقِّ الْمُرُورِ رِوَايَتَانِ نود تيريدلو حق خرڅولو کې دوې (دوه) روايتونه دی.

تشريح:- او که دوهم صورت مراد وي.يعنې د طريق نه مراد حق مرور وي.اود مسيل نه مراد حق تسيل وي.نود لارې نه د تيريدلو د حق په خرڅولو کې دوې (دوه) روايتونه دی.د ابن سماعه رحمه الله په روايت کې د حق مرور خرڅول جائز دی.اود زيادات په روايت کې ناجائز دی.د فقيه ابوالليث قول هم د زيادات موافق دې.لکه فرمائي.چه حق مرور په حقوقو کې يو حق دې.اود حقوقو بيع جلا جائز نه وي.په دې وجه د حق مرور بيع ناجائز ده.اود اوبو بهيولو د حق بيع جائز کيدل د ټولو رواياتو مطابق دی.نود زيادات روايت مطابق د حق مرور بيع او حق تسيل يعنې د اوبو بهيولو د حق په بيع کې توپير نشته.ځکه چې دواړه ناجائز دی.

وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى إِحْدَاهُمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ حَقِّ التَّسْيِيلِ أَنَّ حَقَّ الْمُرُورِ مَعْلُومٌ او په دې دواړو کې يو روايت باندې په دې کې اود اوبو روانولوحق خرڅولو باطلولوکې توپير دادې.چه د لارې نه د تيريدلو حق معلوم دې. لِتَعَلُّقِهِ بِمَحَلٍّ مَعْلُومٍ وَهُوَ الطَّرِيقُ ځکه چې ددې تعلق يو معلوم ځائې سره دې.او هغه لاره ده.

تشريح:- البته د ابن سماعه رحمه الله د روايت مطابق د حق مرور بيع اود حق تسهيل بيع کې توپير دادې.چه د حق مرور بيع جائز اود حق تسهيل بيع ناجائز ده.دې دواړو مينځ کې وجه د توپير داده.چه حق مرور يعنې د لارې نه تيريدلو حق يو معلوم امر دې.او حق مرور معلوم امر ځکه دې.چه ددې تعلق يو معلوم ځائې سره دې.او هغه معلوم ځائې لاره ده.لکه څنګه چې وړاندې تير شوی دی.چه لاره د طول او عرض بيانولو سره معلوميږي.يا د شريعت په مقررولوسره معلوم ده.بهرحال لاره معلوم ده.او هرکله چې لاره معلوم ده.نو په دې به د تيريدلو حق هم معلوم وي.او هرکله چې حق مرور معلوم دې.نو ددې بيع هم جائز ده.

أَمَّا الْمَسِيلُ عَلَى السَّطْحِ فَهُوَ نَظِيرُ حَقِّ التَّعَلِّي پاتې شو چت باندې د اوبو تيرولو حق نودا د حق تعلی مثال دې وَعَلَى الْأَرْضِ مَجْهُولٌ او په مځکه باندې مجهول دې لِجَهَالَةِ مَحَلِّهِ ځکه چې د اوبو بهيدلو ځائې مجهول دې.

حل اللغة:- ① المسيل،داوبو تيريدو حق،② السطح،چت،③ الارض،مځکه ،④ التعلی،د کور پورتنې منزل کې اوسيدل

تشريح:- او پاتې شوحق تسيل يعنې د اوبو بهيولوحق نو ددې دوې (دوه) صورتونه دی.اوبه په چهت بهيږي.يا به په مځکه بهيږي.که په چهت بهيږي.نو ددې بيع به هم ناجائز وي.او دويمه وجه داده.چه حق تسهيل مجهول دې.ځکه چې د اوبو دقلت اوکثرت په وجه به د اوبو بهيدل مختلف وي.نود؟؟ تسهيل يعنې د اوبو د بهيدلو د مجهول کيدلو په وجه به بيع ناجائز وي.او که اوبه په مځکه باندې بهيږي.نو بيا هم تسهيل مجهول دې. ځکه چې د اوبو بهيدلو ځائې مجهول دې.معلومه نه ده.چه اوبه به څومره قدرې ځائې راګيروي.او هرکله چې تسهيل مجهول دې.نو ددې بيع به هم ناجائز وي.



وَوَجْهُ الْفَرْقِ بَيْنَ حَقِّ الْمُرُورِ وَحَقِّ التَّعَلِّي عَلَى إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ او په دوی (دوه) روايتونوکې په يو روايت باندې د حق مرور اود حق تعلی په منځ کې وجه د توپير داده. أَنَّ حَقَّ التَّعَلِّي يَتَعَلَّقُ بِعَيْنٍ لَا تَبْقَى چې حق تعلی داسې عين سره متعاق دې.کوم چې پاته نه پاتې کيږي. وَهُوَ الْبِنَاءُ او هغه لاندې کور دې فَأَشْبَهَ الْمَنَافِعَ نودا حق د منافع مشابه شوې دې.

حل اللغة:- ① المرور،تيريدل،② اشبه،مشابه شو،③ ذ تبقی،پاته کيږي،④ البناء،ابادي

تشريح:- د ابن سماعه د روايت مطابق چونکه د حق مرور بيع جائز ده.او وړاندې بيان شوی دی.چه د حق تعلی بيع ناجائز ده.په دې وجه ددې دواړو په مينځ کې توپير کول هم ضروری دی.نو وجه د توپير اوګورئ. فرمائي.چه د حق تعلی،تعلق د داسې عين سره وی.چه د هغې لپاره هميشه بقاء نشته.او هغه عين ( د چهت) لاندې ارخ ته کور دې.نو حق تعلی دمنافع مشابه شو.وجه د شبه دواړو لپاره عدم بقاء ده.يعنې نه د منافع لپاره بقاء ده.او نه د کور لپاره بقاء شته.اود منافع بيع جائز نه وي.نود حق تعلی بيع به هم جائز نه وي.

أَمَّا حَقُّ الْمُرُورِ او پاتې شو د تيريدلو حق يَتَعَلَّقُ بِعَيْنٍ تَبْقَى او پاتې شو د تيريدلو حق نودا داسې عين سره متعلق دې.کوم چې پاته کيږي وَهُوَ الْأَرْضُ او هغه مځکه ده فَأَشْبَهَ الْأَعْيَانَ نودا د اعيان مشابه شو.

تشريح:- او پاتې شوحق مرور،نو ددې تعلق داسې عين سره وی.چه د هغې لپاره هميشه لپاره بقاء وی.او هغه عين مځکه ده.نو حق مرور د اعيان مشابه شو.او وجه د شبه دواړو لپاره بقاء ده.يعنې لکه څنګه چې د اعيان لپاره بقاء ده.دغه ډول د حق مرور لپاره هم بقاء وی.اود اعيان بيع جائز ده.نود حق مرور بيع به هم جائز وی.حاصل داچه محل بيع به يا هغه اعيان وی.کوم چې د اموال د قبيلې څخه دی.يا به داسې حق محل بيع وی.کوم چې د اعيان سره متعلق وی.

### ماده ئې څرڅه کړله.نو نر اوختلو،د بيع حکم

قَالَ فرمايي وَمَنْ بَاعَ جَارِيَةً او چاچه وينځه خرڅه کړله فَإِذَا هُوَ غُلَامٌ بيا دا غلام اوختلو فَلَا بَيْعَ بَيْنَهُمَا نو ددې دواړو په منځ کې بيع نشته بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ كَبْشًا په خلاف ددې چې کله يو کس ګډ خرڅ کړو فَإِذَا هُوَ نَعْجَةٌ خودا ګډه اوختله حَيْثُ يَنْعَقِدُ الْبَيْعُ نو بيع به منعقد وی وَيَتَخَيَّرُ او مشتری ته به اختيار وی.

حل اللغة:- ① الجارية،وينځه،② کبش،ګډ،③ نعجة،ګډه،④ يتخير،اختيارورکولې شي

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس يوه وينځه خرڅه کړله.او وې ونيل.چه ما دا وينځه خرڅه کړله. مشتری قبول کړله.بيا معلومه شوه.چه دا وينځه نه ده.بلکه غلام دې.نو بيع به درست نه وی.او که ګډه ئې خرڅه کړله.مشتری قبول کړله.بيا معلومه شوه.چه دا ګډه نه ده.بلکه ګډ دې.نو بيع به درست وی.خو مشتری ته به د بيع فسخ کاوه اختيار وی.

وَالْفَرْقُ يَنْبَنِي عَلَى الْأَصْلِ او توپير په هغه اصل باندې مبنی دې. الَّذِي ذَكَرْنَاهُ فِي النِّكَاحِ لِمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ کوم چې مونږ په ،،کتاب النکاح،،کې د امام محمد رحمه الله ارخ ته منسوب کړې بيان کړې دې وَهُوَ أَنَّ الْإِشَارَةَ مَعَ التَّسْمِيَةِ إِذَا اجْتَمَعَتَا او هغه دادې.چه کله اشاره مع التسميه جمع شی فَفِي مُخْتَلِفِي الْجِنْسِ يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِالْمُسَمَّى نود جنس مختلف کيدلو په صورت کې عقدمسمی سره متعلق وی وَيَبْطُلُ لِانْعِدَامِهِ او ددې په معدوم کيدلو سره به عقدباطليږي وَفِي مُتَّحِدِي الْجِنْسِ يَتَعَلَّقُ بِالْمُشَارِ إِلَيْهِ اودجنس متحد کيدلو په وجه به مشتری ته اختيار وی وَيَنْعَقِدُ لِوُجُودِهِ او ددې په موجود کيدلو سره به عقد منعقد کيږي.وَيَتَخَيَّرُ لِفَوَاتِ الْوَصْفِ اود وصف فوت کيدلو په وجه ب مشتری ته اختيار وی.

تشريح:- د متن د وضاحت نه وړاندې دا قاعده ياده ساتئ:چې اتحادجنس،او اختلاف جنس مدار په دې وی.که د دوې (دوه) څيزونو اغراض متفاوت وی.نو دواړه مختلف دوې (دوه) جنسونه شمارلې کيږي.اګرچه د دواړو اصل او

ماده یوه وی.مثلا د انګورو سرکه،اود انګورو شیره. سره ددې چې ددې دواړو اصل اوماده انګور دی.خو متفاوت فی الاغراض دی.په دې وجه دا یو جنس شمارلې کیږی.او که اغراض متفاوت نه وی.نو دواړه یوجنس شمارلې کیږی.لکه وذاری کپړه کومه چې د سمرقند وذر کلی اړخ ته منسوب ده.او زندنجی کپړه کومه چې زندنه د بخارا یوکلی اړخ ته منسوب ده.سره ددې چې د دواړو اصل مالوچ دی.خو متفاوت الاغراض دی.په دې وجه دوې (دوه) جنسه شمارلې کیږی.

نود انسان د نر اوماده اغراض چونکه متفاوت دی.په دې وجه دا دوې (دوه) جنسه شمارلې کیږی.او متفاوت فی الاغراض ځکه دی.چه د غلام نه د کور نه د بهر خدمت (لکه تجارت،زراعت وغیره) مقصود وی.او په ځاروو کې د نر اوماده د ټولو مقصد کلی یو دې.یعنی ددې غوښه خوړل،سوارلی کول،وزن بارول،په دې وجه د حیواناتو نر اوماده یوجنس دې.

اوچه مشارالیه او مسمی دواړه جمع شی.نود دواړو جنس که مختلف وی.نو عقد به مسمی سره متعلق وی.لکه په متن کې لومړنی مسئله کې چې مشارالیه غلام دې.او مسمی (د کوم چې نوم اخستې شوې دې) وینځه ده.اود غلام او وینځې دواړو جنس مختلف دې.لکه څنګه چې په اوله خبره کې تیر شو.نو عقدبیع به مسمی سره متعلق وی.او مسمی وینځه ده.حالانکه مسمی یعنی وینځه معدوم ده.اود معدوم بیع باطل وی.په دې وجه به په دې صورت کې بیع جائز نه وی.

اوکه مشارالیه او مسمی دواړه په عقد کې جمع کړې شی او د دواړو جنس متحد وی.نود عقد تعلق به مشارالیه سره وی.لکه د متن په دویمه مسئله کې چې مشارالیه ګډ دې.او مسمی ګډه ده.او په دې دواړو کې اتحادجنس دې.په دې وجه د عقد تعلق مشارالیه یعنی ګډ سره وی.او ګډ موجود دې.زیات نه زیات دا وئیلې شی.چه وصف مرغوب فیه یعنی نر کیدل فوت شو.نو ددې په وجه به مشتری ته د بیع فسخ کاوه اختیار حاصل وی.

كَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا الکه مثلاً یوکس یو غلام په دې شرط واخستلو عَلَى أَنَّهُ خَبَّازٌ چې دې ډوډئ پخونکې (نان پز) دې فَإِذَا هُوَ كَاتِبٌ، خو دې لیکونکې (خطاط) اوختلو وَفِي مَسْأَلَتِنَا الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى مِنْ بَنِي آدَمَ جِنْسَانِ اوزمونږ په ذکرشوې مسئله کې د بنیادمو نر او ماده دوې (دوه) جنسونه دی لِلتَّفَاوُتِ فِي الْأَغْرَاضِ، ځکه چې ددې په اغراضو کې تفاوت دې وَفِي الْحَيَوَانَاتِ جِنْسٌ وَاحِدٌ او په ځاروو کې نر او ماده یو جنس دې لِلتَّقَارُبِ فِيهَا ځکه چې ددې په اغراضو کې تقارب دې وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي هَذَا. او په اختلاف جنس او اتحادجنس کې هم دا معتبر دې دُونَ الْأَصْلِ په اصل کې اتحاد یا اختلاف معتبر نه دی كَالْخَلِّ وَالدِّبْسِ جِنْسَانِ. لکه سرکه اود انګورو شیره دوې (دوه) جنسه دی وَالْوَذَارِيُّ وَالزَّنْدَنِيجِيُّ عَلَى مَا قَالُوا جِنْسَانِ او وذاری کپړه او زندنیجی کپړه، د مشائخو د قول په بناء باندې دوې (دوه) جنسه دی مَعَ اتِّحَادِ أَصْلِهِمَا سره ددې چې ددې دواړو اصل متحد دې.

**حل اللغة:-** ① خباز،نانبائی، ② الدبس،دانګورشیره، ③ الاغراض،جمع دغرض، قصد، ④ الخل،سرکه

**تشریح:-** ددې متن وضاحت په وړاندینۍ شرح کې شوې دې دلته نې د دوباره وضاحت اړتیا نشته.

**د بیع عینه حکم**

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً بِأَلْفِ دِرْهَمٍ حَالَّةً أَوْ نَسِيئَةً فرمائی.اوکه یوکس یوه وینځه د زر روپو په عوض په نغدو یا په پور واخستله فَقَبَضَهَا بیا مشتری په وینځه باندې قبضه اوکړله ثُمَّ بَاعَهَا مِنَ الْبَائِعِ بِخَمْسِمِائَةٍ قَبْلَ أَنْ يَنْقُدَ الثَّمَنَ الْأَوَّلَ اود ثمن ادا کاوه نه وړاندې نې وینځه د بائع په لاس د پنځه سوه روپو په عوض خرڅه کړله لَا يَجُوزُ الْبَيْعُ الثَّانِي نو دویمه بیع جائز نه ده

**حل اللغة:-** ① جاریة،وینځه، ② نسیئة،قرض، ③ سواء،برابر، ④ تم،پوره شو

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوکس یوه وینځه (یا بل څه سامان) د زر درهمو (یا د پنځو سوو وغیره) په عوض په نغدو یا په پور واخستله.بیا مشتری په وینځه باندې قبضه اوکړله.بیا مشتری د ثمن ادا کاوه نه وړاندې



د زرو روپو نه په کم مثلا د پنځه سوه نغدو روپو په عوض دا وینځه خپل بائع باندې خرڅه کړله.نودا بیع ثاني زمونږ په نیز ناجائز ده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَجُوزُ او امام شافعي ﷫ فرمائیلي دي چه جائز ده لِأَنَّ الْمِلْكَ قَدْ تَمَّ فِيهَا بِالْقَبْضِ ځکه چې قبضه سره په وینځه کې ملکیت پوره شو فَصَارَ الْبَيْعُ مِنَ الْبَائِعِ وَمِنْ غَيْرِهِ سَوَاءً نود بائع او غیربائع په لاس خرڅول دواړه برابر دي وَصَارَ كَمَا لَوْ بَاعَ بِمِثْلِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ أَوْ بِالزِّيَادَةِ أَوْ بِالْعَرْضِ اودا داسې شوه لکه (مثلاً) ده د ثمن اول برابر یا د ثمن اول نه زیات په عوض یا د څه سامان په عوض خرڅ کړلو.

**تشریح:-** **مذهب الشافعي** ﷫: په زیر بحث مسئله کې مذکوره صورت کې بیع د د امام شافعي ﷫ په نیز جائز ده.

**دلیله:** د حضرت امام شافعي ﷫ دلیل دادې.چه هرکله مشتری په مبیع باندې قبضه اوکړله.نو دده ملکیت پوره شوې دې.اود ملکیت پوره کیدلو په وجه د غیربائع په لاس خرڅول بالاتفاق جائز دی.نو په دې باندې قیاس کاوه سره به په بائع باندې خرڅول هم جائز وی.او لکه څنګه چې د ثمن اول په برابر عوض یاد ثمن اول نه دزیات په عوض یا د څه سامان په عوض د خپل بائع په لاس خرڅول جائز دی.دغه ډول د ثمن اول نه د کم په عوض خرڅول هم جائز دی.حاصل داچه امام شافعي ﷫ ددې مختلف فیه صورت په نورو متفق علیه صورتونو باندې قیاس کړي دي.

وَلَنَا قَوْلُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: لِتِلْكَ الْمَرْأَةِ او زمونږ دلیل د حضرت عائشه ﷺ هغه ښځې ته فرمان دې وَقَدْ بَاعَتْ بِسِتِّمِائَةٍ بَعْدَ مَا اشْتَرَتْ چې دې د اته سوه درهمو په عوض (یوه وینځه) واخستله.اود شپږسوه درهمو په عوض نې خرڅ کړله. بِثَمَانِمِائَةٍ: بِئْسَمَا شَرَيْتِ وَاشْتَرَيْتِ،نو دې دیر ناکاره اخستل خرڅول اوکړل أَبْلِغِي زَيْدَ بْنَ أَرْقَمَ أَنَّ اللَّهَ تَعَالَى أَبْطَلَ حَجَّهُ وَجِهَادَهُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ إِنْ لَمْ يَتُبْ؛[1] که تا توبه اونکړله.نو تا چې څومره حجونه اوجهاد رسول الله ﷺ سره کړي دي.الله تعالی به دا واړه باطل کړي.

**حل اللغة:-** ① المرأة،ښځه، ② عوض،بدله، ③ المجانسة،جنسیت، ④ ابطل،باطل کړو

**تشریح:-** زمونږ دلیل د حضرت عائشه ﷺ اثر دې.چې ،، یوې ښځې د ام المؤمنین عائشه ﷺ نه پوښتنه اوکړه.او وې وئیل.چه ما د زیدبن ارقم نه یوه وینځه د اته سوه درهمو په عوض په پور په دې وعده واخستله.چه کله د بیت المال نه وظیفه ملاو شی.نو ادا به نې کړم.بیا د میعاد پوره کیدلو نه وړاندې ما دغه وینځه په زیدبن ارقم باندې په شپږسوه درهم (نغد) په عوض خرڅه کړله.حضرت عائشه ﷺ اوفرمائیل.چه تا ډیر ناکاره اخستل خرڅول اوکړل.زید بن ارقم ته زما داپیغام اورسوه.که ده توبه اونکړله.نوده چې کوم حج اوجهاد درسول الله ﷺ سره کړی دی.الله تعالی به دغه واړه فضول کړی.نو زید بن ارقم حضرت عائشه صدیقه ﷺ ته عذرکونکې تشریف راوړلو.نو حضرت عائشه ﷺ ده ته دا آیت تلاوت اوفرمائیلو.،،بیا چې اورسیدلو چاته نصیحت،د خپل رب د طرفه،اودې منع شو.نو دده لپاره هغه دی.کوم چې وړاندې شوی دی.،،(البقرة۲:۲۷۵)

وجه د استدلال داده.چه حضرت عائشې ﷺ ددې عقد د جرم په سزاکې رسول الله ﷺ سره کړې شوی حج اوجهاد باطلیدل اوګرځول.اود افعالو سزاګانې په رائې او عقل سره نه معلومیږی.په دې وجه حضرت عائشه ﷺ چې څه هم اوفرمائیل.دا به نې د رسول الله ﷺ نه اوریدلی وی.او فرمائیلی به نې وی.اودا هم منلې شوې خبره ده.چه داسې قسمه وعیدونه په عقدصحیح باندې نه واردیږی.بلکه په عقد فاسد باندې واردیږی.نو ثابته شوه چې دا عقد یعنی «شراء ماباع قبل نقد الثمن» فاسد او ناجائز ده.

**السوال:** دلته کې یوسوال دې.هغه داچه وعید د بیع الی العطاء په وجه وی.ځکه چې اجل یعنی د ثمن ادا کاوه

(۱) من حديث أبي إسحاق السبيعي عن إمرأة الحديث أخرجه عبدالرزاق في مصنفه والبيهقي في سننه الكبرى (۵/۵۴۰) رقم ۱۰۷۹۹ والداقطني في سننه (۳/۵۲) رقم ۲۱۱)_

ميعاد عطاء يعنى د بيت المال نه وظيفه ملاويدلو وخت دې.اودا مجهول دې.اود اجل مجهول كيدلو په صورت كي بيع فاسد وي.په دې وجه په دې صورت كي د بيع فاسد كيدلو په وجه حضرت عائشه ﷺ وعيد بيان كړې وي.
الجواب:ددې خواب دادې.چه دحضرت عائشه ﷺ او دحضرت علي ﷺ مذهب د بيع الى العطاء جوازدې.نوهركله چې د حضرت عائشه ﷺ په نيز بيع الى العطاء جائز ده.نو په دې باندې وعيد بيانول څنګه درست كيدلې شي.څكه چې په جائز كار باندې وعيد نه بيانيږي.معلومه شوه.چه وعيد په بيع الى العطاء باندې نه دې.بلكه په «شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن» باندې دې.او حضرت عائشه ﷺ په عقدثانى باندې ناخوښى ښكاره كړله.لكه چې دې فرمائيل «بئس ما شريت» يعنى،، ستا خرڅول ډير ناكاره دى،،او ددې ښځې په زيدبن ارقم باندې خرڅول عقدثاني دې.او عقد ثانى د ثمن په عوض وو.د پور په عوض نه وو.او عقد اول په عوض د پور وو.ددې نه هم معلوميږي.چه د حضرت عائشه ﷺ د اړخه بيان كړې شوې وعيد د اجل مجهول كيدلو په وجه نه دې.بلكه د «شراء ما باع......الخ» په وجه دې.

وَلِأَنَّ الثَّمَنَ لَمْ يَدْخُلْ فِي ضَمَانِهِ او څكه چې ثمن ( تراوسه پورې) د بائع په ضمان كي نه دى داخل شوى فَإِذَا وَصَلَ إِلَيْهِ الْمَبِيعُ وَوَقَعَتِ الْمُقَاصَّةُ بيا كله چې بائع ته مبيع ملاؤ شو بَقِيَ لَهُ فَضْلُ خَمْسِمِائَةٍ او مقاصه واقع شوه.نود بائع لپاره پنځه سوه درهم زيات پاته شو وَذَٰلِكَ بِلَا عِوَضٍ،حالانكه دا زياتوالې بلاعوض دې بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ بِالْعَرْضِ په خلاف ددې كله چې ئې د سامان په عوض خرڅ كړى لِأَنَّ الْفَضْلَ إِنَّمَا يَظْهَرُ عِنْدَ الْمُجَانَسَةِ څكه چې زياتوالې هغه وخت ښكاره كيږي.كله چې دواړه ثمن د يوجنس وي.

تشريح:- د بيع عينه د عدم جواز عقلى دليل دادې.چه ثمن لاتر اوسه پورې د بائع په قبضه كي نه دى راغلى.نو هركله چې بائع ته مبيع واپس ملاؤ شو.يعنى دوباره بيع اوشوه.او يو تربله برابر سرابر معامله اوشوه.نود بائع لپاره پنځه سوه درهم زيات پاتې شو.حاصل داچه د بيع اول په وجه د بائع په مشترى باندې زر درهم واجب شو.اود بيع ثانى په وجه په بائع باندې د مشترى پنځه سوه درهم واجب شو.او مبيع صحيح سلامت بائع ته ملاؤ شو.نو اوس د پنځه سوه درهمو مقاصه يعنى برابر بدله اوكړې شوه.چه د بائع د ذمه نه د مشترى پنځه سوه درهم ساقط شو.اود مشترى د ذمه نه د بائع پنځه سوه درهم ساقط شو.خود بائع په مشترى باندې پنځه سوه درهم زياتى شو.اودا زياتى درهم بلاعوض دى.اود عوض نه بغير زياتى ربوا وي.په دې وجه به دا ربوا وي.او ربوا ناجائز ده.په دې وجه به دا عقدثانى ناجائز وي.اګرچه د سامان قيمت ثمن اول يعنى د زرو درهمو نه كم وي.څكه چې زياتوالې هغه وخت ښكاره كيږي.چه كله دواړه ثمن ( يعنى د بيع اول ثمن اود بيع ثانى ثمن ) د يوجنس څنې وي.

### اخستلې شوې وينځه سره د ثمن اود دويمې وينځې ملاوولو بائع ته ليګل

📖 قَالَ وَمَنِ اشْتَرَىٰ جَارِيَةً بِخَمْسِمِائَةٍ فرمائي.كه يوكس يوه وينځه د پنځه سوه درهمو په عوض واخستله ثُمَّ بَاعَهَا وَأُخْرَىٰ مَعَهَا مِنَ الْبَائِعِ قَبْلَ أَنْ يَنْقُدَ الثَّمَنَ بِخَمْسِمِائَةٍ بيا د ثمن ادا كاوه نه وړاندې دا وينځه او ددې سره بله وينځه ملاؤ كړله.اود بايع په لاس ئې د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه ئې كړله فَالْبَيْعُ جَائِزٌ فِي الَّتِي لَمْ يَشْتَرِهَا مِنَ الْبَائِعِ نو كومه وينځه ئې چې د بائع نه، نه وه اخستې.د هغې بيع جائز ده وَيَبْطُلُ فِي الْأُخْرَىٰ اود دويمې وينځې بيع باطل ده.

حل اللغة:- ① جارية،وينځه، ② ينقد،نقدې وركړي، ③ خمسمائة،پنځه سوه، ④ يبطل،باطليږي

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يو سړى د پنځه سوه درهمو په عوض يوه وينځه واخستله.بيا مشترى د ثمن ادا كاوه نه وړاندې دا وينځه او دې وينځې سره دويمه وينځه ملاؤ كړله.او دواړه ئې د خپل بائع په لاس د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅ كړلې.نو كومه وينځه ئې چې د بائع نه نه وي اخستې.د هغه وينځې بيع به جائز وي.او دويمه وينځه كومه ئې چې د بائع نه اخستې وه.د هغې بيع به باطل وي.

لِأَنَّهُ لَا بُدَّ أَنْ يُجْعَلَ بَعْضُ الثَّمَنِ بِمُقَابَلَتِهَا څكه چې د ثمن يوه برخه د هغه وينځې په مقابله كي كول ضرورى دى الَّتِي لَمْ



يَشْتَرِهَا فَيَكُونُ مُشْتَرِيًا لِلْأُخْرَىٰ بِأَقَلَّ مِمَّا بَاعَ نو بائع اول به د دويمې وينځې د (كومه ئې چې د بائع نه، نه وه اخستې) فيكون مشتريا للاخرى باقل مما باع نو بائع اول به د دويمې وينځې د هغې نه د كم په عوض اخستونكې شي.د څومره په عوض ئې چې خرڅه كړې وه وَهُوَ فَاسِدٌ عِنْدَنَا، حالانكه دا زمونږ په نيز فاسد ده وَلَمْ يُوجَدْ هَٰذَا الْمَعْنَىٰ فِي صَاحِبَتِهَا اودا خبره په دويمه وينځه كي نه موندلې كيږي.

حل اللغة:- ① يجعل،اوګرځولې شي، ② اقل،كم، ③ ضعيف،كمزورې، ④ مشترى،اغوستونكې

تشريح:- دليل دادې.چه مشترى چونكه خپل بائع ته دوې (دوه) وينځې د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅ كړې دى.په دې وجه به دا پنځه سوه درهم د دواړو وينځو مقابل وي.يعنى په پنځه سوه درهمو كي به څه د هغه وينځې ثمن وي.كومه ئې چې د بائع نه نه وي اخستې.او څه به د هغه وينځې ثمن وي.كومه ئې چې د بائع نه د پنځه سوه درهمو په عوض اخستې وه.نو بائع د خپل مشترى نه هغه وينځه كومه ئې چې د پنځه سوه درهم په عوض خرڅه كړې وه.ددې د ثمن ادا كاوه نه وړاندې د پنځه سوه درهم نه د كم په عوض اخستونكې شو.يعنى بائع چې كومه وينځه د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه كړې وه.په هغې كي «شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن» لازم شوه.اودا زمونږ په نيز فاسد ده.په دې وجه به ددې وينځې بيع فاسد او ناجائز وي.او دويمه وينځه كومه چې مشترى د خپل اړخه ملاؤ كړې ده.او خرڅه كړې ئې ده.په هغې كي چونكه د «شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن» معنى نشي موندلې.په دې وجه به ددې بيع جائز وي.

وَلَا يَشِيعُ الْفَسَادُ اودا فساد به نه خوريږي لِأَنَّهُ ضَعِيفٌ فِيهَا څكه چې دا فساد په دويمه وينځه كي كمزورې دې

تشريح:- دا عبارت سره د يوسوال څواب دې. هغه دا چې بائع كومه وينځه خرڅه كړې وه.هركله چې د بائع دا اخستل فاسد او ناجائز دى.نود دويمې وينځې كومه چې بائع نه وه خرڅه كړې.د هغې اخستل هم فاسد او ناجائز كيدل پكار دى.څكه چې دواړه په يوه صفقه كي اخستې شوې دى؟

الجواب:دادې.چه بائع كومه وينځه اول د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه كړې وه.د هغې په اخستلو كي چې كوم فساد دې.هغه د دويمې وينځې اړخ ته سرايت نه كوى.څكه چې په دې وينځه كي دا فساد ضعيف اوكمزورې دې.او كمزورې شئ بل اړخ ته نه متعدى كيږي.په دې وجه دا فساد دويمې وينځې اړخ ته نه متعدى كيږي.

لِكَوْنِهِ مُجْتَهَدًا فِيهِ څكه چې دا مختلف فيه ده. أَوْ لِأَنَّهُ بِاعْتِبَارِ شُبْهَةِ الرِّبَا،يا په دې وجه چې فساد د ربا، د شبه په وجه دې أَوْ لِأَنَّهُ طَارِئٌ يا څكه چې دا فساد خور دې. لِأَنَّهُ يَظْهَرُ بِانْقِسَامِ الثَّمَنِ څكه چې دا د ثمن تقسيمولو نه ښكاره كيږي أَوِ الْمُقَاصَّةِ يا برابر سرابر كاوه سره ښكاره كيږي فَلَا يَسْرِي إِلَىٰ غَيْرِهَا په دې وجه دويمې وينځې اړخ ته نه خوريږي.

حل اللغة:- ① الربا،سود، ② طار،خورشو، ③ المقاصة،برابرى، ④ يسرى،برى كيږي

تشريح:- اود فساد كمزورې څو وجهې دى.① يوه داچه د «شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن» په جواز اوعدم جواز كي د مجتهدينو اختلاف دې.زمونږ په نيز ناجائز ده.اود امام شافعي ﷫ په نيز جائز ده.او په كوم شئ كي چې اختلاف وي.د هغې فاسد،او ناجائز كيدل كمزورې كيږي.په دې وجه دا فساد ضعيف او كمزورې دې.② دويمه داچه كومه وينځه بائع خرڅه كړې وه.هغه د ثمن ادا كاوه نه وړاندې د ثمن اول نه د كم په عوض اخستل،د شبه الربوا په وجه فاسد او ناجائز ده.اودا ښكاره ده.چه شبه الربوا د حقيقى ربوا په مقابله كي كمزورې ده.په دې وجه ددې وينځې په اخستلو كي چې كوم فساد دې.هغه به كمزورې اوضعيف وي.③ دريمه داچه كومه وينځه ئې خرڅه كړې وه.د ثمن ادا كاوه نه وړاندې د ثمن اول نه د كم په عوض ددې په اخستلو كي چې كوم فساد دې.هغه د عقد په ابتداء كي نشته.بلكه دعقد نه روسته پيدا كيږي.

اودا فساد په دوې (دوه) طريقو سره پيدا كيږي.يو په دې طريقه چې هركله مشترى دوې (دوه) وينځې د پنځه سوه درهم په عوض خرڅ كړلې.نو پنځه سوه درهم د دوې (دوه) وينځو مقابل كول ټيك دى.څكه چې د مشترى د اړخه دا شرط نه دې لګولې شوې.چه د كومې وينځې په مقابله كي څومره ثمن دې.خو ددې نه روسته د دواړو وينځو د

قیمتونو په تناسب سره پنځه سوه درهم به په دواړو تقسیمیږي.نو په پنځه سوه درهموکي به څه درهم د هغه وینځي جوړیږي.کومه چې بائع د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه کړې وه.او څه درهم به د هغه وینځي ثمن مقرر ګرځي.کومه چې بائع نه وه خرڅه کړې.نو چونکه اوس معلومه شوه.چه بائع خپله خرڅه کړې وینځه د ثمن اول نه د کم په عوض اخستې ده.په دې وجه دا فساد پیدا شو.

دوهم په دې طریقه پیداشوې دې.چه د بائع پنځه سوه درهم د مشتري په ذمه د یوې وینځي عوض واجب دې.هم دغه وینځه بائع له واپس راغلله.اود مشتري پنځه سوه درهم په بائع باندې لازم شوې.نود دواړو مقاصه یعنی برابر سرابر بدله اوشوه.یعنی د مشرتي د ذمه نه پنځه سوه درهم ساقط شو.د هغه پنځه سوه درهمو په بدل کي کومې چې د مشتري د بائع په ذمه وې.اود بائع د ذمه نه پنځه سوه درهم ساقط شو.د هغه پنځه سوه درهمو په بدله کي کومې چې د بائع په مشتري باندې واجب وې.خو بائع ته یوه وینځه مفت په لاس راغلله.نو ددې یوې وینځي مفت په لاس راتګ ،د بیع د جواز نه روسته فساد پیداکیدل دی.بهرحال د بائع خپله خرڅه کړې شوې وینځه د ثمن اول نه د کم په عوض اخستلوکي چې کوم فساد دې.هغه پیدا شوې دې.او پیداشوې فساد کمزورې دې.په دې وجه دا فساد کمزورې دی.اوکمزورې فساد بل اړخ ته نه متعدی کیږی.په دې وجه د بائع خپله خرڅه کړې شوې وینځه د اخستلو په فاسد کیدلو سره دویمه وینځه اخستل نه فاسدوی.

## د زیتون تیل د لوښي د وزن سره خرڅول.اود لوښي نه معین وزن کمول

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى زَيْتًا فرمائی.اوکه یوکس د زیتون تیل په دې شرط واخستل عَلَى أَنْ يَزِنَهُ بِظَرْفِهِ چې دا به د مشتري د لوښي سره وزن کوی فَيَطْرَحَ عَنْهُ مَكَانَ كُلِّ ظَرْفٍ خَمْسِينَ رَطْلًا بیا به بائع د هر لوښي په ځاې د مشتري نه پنځوس رطله کموی فَهُوَ فَاسِدٌ نودا بیع فاسد ده.

حل اللغة:- ① زیت،د زیتون تیل، ② ظرف،لوښې، ③ الطرح،کمیدل، ④ خمسین،پنځوس

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی د زیتون تیل په دې شرط واخستل.چه بائع به د مشتري په لوښي کښې ډک ډک ده ته وزن کوی.او بیا به د هر لوښي په ځاې یو معین مقدار مثلا پنځوس رطله کموی.نودا بیع فاسد ده.مثلا یو کس زر رطله د زیتون تیل واخستل.او مشتري بائع ته یو لوښې ورکړلو.چه په هغې کې ئې د زیتون تیل ډک وزن کړل.نود تیلو اود لوښي دواړو وزن سل رطله وو. مشتري اوونیل.چه ددې لوښي وزن د پنځوس رطله په حساب سره کم کړه.حالانکه د لوښي صحیح وزن معلوم نه دې.ګویا مشتري اوونیل.چه دا لوښې شل خله ډک راکړه.چه د هرلوښي وزن پنځوس رطله کم شي.او زر رطله د زیتون تیل پاتې شي.نودا عقد فاسد دې.

وَلَوِ اشْتَرَى عَلَى أَنْ يَطْرَحَ عَنْهُ بِوَزْنِ الظَّرْفِ وکه په دې شرط ئې واخستل.چه د مشتري څخه به د لوښي د وزن برابر کموی جَازَ نودا جائز دی.

تشریح:- اوکه د زیتون تیل ئې په دې شرط واخستل.چه د لوښي څومره قدرې وزن وی.په هغه حساب سره کم کړې شي.نودا بیع جائز ده.

لِأَنَّ الشَّرْطَ الْأَوَّلَ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ په دې وجه د ړومبی شرط عقد تقاضا نه کوی وَالثَّانِي يَقْتَضِيهِ اود شرط ثانی عقد تقاضا کوی.

تشریح:- دلیل دا دې چې په اولنی صورت کې شرط د عقد د مقتضی خلاف دې. کیدای شي.چه د لوښي وزن پنځوس رطلو نه کم وی.اودا هم کدې شي.چه د پنځوس رطلو نه زیات وی. نود معین مقدار شرط لګول د عقد د مقتضی خلاف دی.اود عقدد مقتضی خلاف شرط لګول مفسد د عقد وی.په دې وجه په دې صورت کې عقد فاسد وی.اوپه دوهم صورت کې شرط د عقد د مقتضی موافق دې.په دې وجه به دا بیع جائز وی.



## په لوښي کښې دغوړو اخستلو نه روسته د بائع اومشتري د لوښي په وزن کښې اختلاف

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى سَمْنًا فِي زِقٍّ فرمائی.او چاچه په یوه ټپکه (ګیلن) کې غوړی واخستل. فَرَدَّ الظَّرْفَ اوګیلن ئې واپس کړو وَهُوَ عَشَرَةُ أَرْطَالٍ چې دا لس رطله وو فَقَالَ الْبَائِعُ الزِّقُّ غَيْرُ هَذَا نو بائع اوونیل.چه هغه ګیلن ددې نه علاوه وو.(په کوم کي چې غوړی وو) وَهُوَ خَمْسَةُ أَرْطَالٍ چې هغه پنځه رطله وو فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي نود مشتري قول به معتبر وی.

حل اللغة:- ① سمن،غوړی، ② زق،ټپکه، ③ ارطال،جمع د رطل،یوه پیمانه ده، ④ عشرة،لس

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی په یو ټپکه کي غوړی واخستل.او په دې ئې قبضه اوکړله.بیا مشتري ګیلن خالی کړلو.او واپس ئې کړله.چه ددې خالی ګیلن وزن لس رطله شو.بائع اوونیل.چه په کوم ګیلن کي غوړی وو.هغه ددې نه علاوه ده.اود هغې وزن پنځه رطله وو.غرض دا چې مشتري کومه ګیلن (ټپکه) واپس کړې ده.د هغې وزن لس رطله دې.او بائع وائی.چه په کوم ګیلن کي غوړی وو.د هغې وزن پنځه رطله وو.نو په دې صورت کي به د مشتري قول مع الیمین معتبر وی.په دې شرط چې د بائع سره ګواهان نه وی.

لِأَنَّهُ إِنِ اعْتُبِرَ اخْتِلَافًا فِي تَعْيِينِ الزِّقِّ الْمَقْبُوضِ څکه که ددې اختلاف اعتبار په قبضه شوې ګیلن کي وی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْقَابِضِ نود قابض قول به معتبروی ضَمِينًا كَانَ أَوْ أَمِينًا چې ضامن وی.اوکه امین وی.

حل اللغة:- ① ضمین،ضمانت کونکې، ② امین،امانت ګر، ③ السمن،غوړی، ④ الثمن،پیسې

تشریح:- دلیل دادې.چه د بائع او مشتري اختلاف به یا د ګیلن په تعین کي وی.اویا به ئې د غوړو په مقدار کي وی.که اول وی.نود مشتري قول به څکه معتبر وی.چه مشتري قابض دې.اود بینه نه کیدلو په صورت کي د قابض قول معتبر وی.قابض که ضامن وی.لکه غاصب،او که امین وی.لکه هغه سړې چې ورسره امانت ایخودلې شوې وی.

وَإِنِ اعْتُبِرَ اخْتِلَافًا فِي السَّمْنِ اوکه ددې اختلاف اعتبار په (مقدار) د غوړو کي دې فَهُوَ فِي الْحَقِيقَةِ اخْتِلَافٌ فِي الثَّمَنِ نودا په حقیقت کي په ثمن کي اختلاف دې فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَ الْمُشْتَرِي نود مشتري قول به معتبر وی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ الزِّيَادَةَ څکه چې مشتري د زیاتوالی منکردې.

تشریح:- اوکه اختلاف د غوړو په مقدار کي وی.نودا په حقیقت کي په ثمن کي اختلاف دې.یعنی بائع د زیاتی پنځو رطلو د ثمن دعوه کوی.او مشتري ددې زیادت منکر دې.او مدعی سره د بینه نه کیدلو په صورت کي د منکرقول مع الیمین معتبر وی.په دې وجه به د مشتري قول مع الیمین معتبر وی.

## نصرانی ته د شرابو اخستلو یا خرڅولوحکم سره د بیع حکم

قَالَ: وَإِذَا أَمَرَ الْمُسْلِمُ نَصْرَانِيًّا بِبَيْعِ خَمْرٍ أَوْ شِرَائِهَا فرمائی.که یو مسلمان نصرانی د شراب خرڅولویا د شرابو اخستلو وکیل جوړ کړو فَفَعَلَ ذَلِكَ بیا نصرانی دا کار اوکړو. جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز دې. وَقَالَا لَا يَجُوزُ عَلَى الْمُسْلِمِ[1] و صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه په مسلمان باندې جائز نه دې وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْخِنْزِيرُ او هم په دې اختلاف باندې خنزیر دې. وَعَلَى هَذَا تَوْكِيلُ الْمُحْرِمِ غَيْرَهُ بِبَيْعِ صَيْدِهِ او هم په دې اختلاف باندې د محرم د خپل ځان نه علاوه باندې د خپل ښکار خرڅولو وکیل کول دی.

[1] القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في الشرنبلالية (١٧٤\٢) والدر المختار(١٣٥\٤) والبحر الرائق (٨٤\٦) نقلاً عن القول الراجح (٤٥\٢)۔

تشريح:- كه مسلمان يو نصراني د شراب اخستلو يا خرڅولو وكيل كړلو.دغه ډول كه مسلمان يو نصراني د خنزير اخستلو يا خرڅولو وكيل كړلو.دغه ډول كه يو سړي د احرام تړلو نه وړاندې ښكار اوكړلو.بيا ئې احرام اوتړلو.او يو غيرمحرم ئې ددې ښكار په خرڅولو وكيل كړلو.په دې درې واړه صورتونو كې حضرت امام ابوحنيفه ﷫ د جواز قائل دې.او صاحبين ﷭ د عدم جواز قائل دی.

وَقَالَا د صاحبينو ﷭ دليل دادې أَنَّ الْمُوَكِّلَ لَا يَلِيهِ چې مؤكل پخپله ددې ولی نه دې فَلَا يُوَلِّيهِ غَيْرَهُ نود خپل ځان نه علاوه هم ددې ولی نشی جوړولې. وَلِأَنَّ مَا يَثْبُتُ لِلْوَكِيلِ يَنْتَقِلُ إِلَى الْمُوَكِّلِ اوځكه چې كوم حكم د وكيل لپاره ثابتيږی.هغه مؤكل اړخ ته منتقل كيږی فَصَارَ كَأَنَّهُ بَاشَرَهُ بِنَفْسِهِ نو داسې شوه.ګويا مؤكل پخپله دا كار كړې دې فَلَا يَجُوزُ په دې وجه به جائز نه وی.

تشريح د صاحبينو ﷭ دليل دادې.چه مؤكل يعنی په ړومبی دوو (دوه) صورتونوكې مسلمان،او په دريم صورت كې محرم ددې تصرف پخپله مالك نه دې.يعنی مسلمان د شراب او خنزير خرڅولو او اخستلو مالك نه دې.او محرم د احرام نه وړاندې د كړی ښكار خرڅولو مالك نه دې.او سړې چې د كوم شئ پخپله مالك نه وی.دې بل څوك هم ددې مالك كولې نشی.په دې وجه به په دريو واړو صورتونوكې وكيل جوړول جائز نه وی.

دوهم دليل دادې.چه كوم حكم د وكيل لپاره ثابت وی.هغه مؤكل اړخ ته منتقل كيږی.نو وكيل يعنی د نصرانی شراب يا خنزير خرڅول يا اخستل،مؤكل يعنی مسلمان اړخ ته منتقل كيږی.اود غير محرم د ښكار خرڅول محرم اړخ ته منتقل كيږی.اودا به داسې شی.لكه چې مؤكل دا كار پخپله كړې وی.اوچونكه مؤكل يعنی په ړومبی دوو (دوه) صورتونوكې د مسلمان شراب اود خنزير اخستل خرڅول او په دريم صورت كې د محرم ښكار خرڅول جائز نه دی.په دې وجه دده څوك وكيل جوړول به هم جائز نه وی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود ابوحنيفه ﷫ دليل دادې أَنَّ الْعَاقِدَ هُوَ الْوَكِيلُ بِأَهْلِيَّتِهِ وَوِلَايَتِهِ چې وكيل پخپل لياقت او ولايت سره پخپله عقد كونكې دې وَانْتِقَالُ الْمِلْكِ إِلَى الْآمِرِ أَمْرٌ حُكْمِيٌّ او آمر ( موكل) اړخ ته د ملكيت منتقل كيدل امرحكمی ( غيراختيارى) دې فَلَا يَمْتَنِعُ بِسَبَبِ الْإِسْلَامِ نود اسلام په وجه به نه ممتنع كيږی. لكه مسلمان كَمَا إِذَا وَرِثَهُمَا چې كله شراب او خنزير په ميراث كې بيامومی.

تشريح:- دحضرت امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې.چه په دې باب كې دوو (دوه) اهليته معتبر دی.يود وكيل د بل مؤكل وكيل يعنی د عاقد لپاره اهليت تصرف ضروری دې.اهليت د تصرف په نصرانی كې موجود دې.ځكه چې دې آزاد دې.عاقل دې، بالغ دې.نود آزاد، عاقل، بالغ كيدلو په وجه نصرانی په مامور به كې د تصرف كاوه اهل دې.اود مؤكل لپاره دومره قدرې اهليت كيدل ضروری دې.چه په حكم د عقد يعنی د مبيع يا ثمن ملكيت ده اړخ ته منتقل شی.اود توكيل په مسئله كې ملكيت مؤكل اړخ ته په غيراختيارى طريقه باندې ثابتيږی.او په غير اختيارى طريقه سره د شراب وغيره ملكيت منتقل كيدلو مؤكل يعنی مسلمان اهل دې.لكه څنګه چې د ميراث په صورت كې د شراب او خنزير ملك مسلمان اړخ ته منتقل كيږی.د ميراث صورت دادې.چه يونصرانی مسلمان شو.او دده سره شراب او خنزير دې.دده زوې د مخكې نه مسلمان دې.اوس كه دا نوې مسلمان نصرانی مړ شو.نو دده مسلمان زوې به دشراب او خنزير مالك شی.ځكه چې د شراب او خنزير ملكيت ددې مسلمان خوی لپاره غير اختيارى طريقه باندې ثابت شوې دې.اودې ددې اهل دې.دغه ډول د وكيل (نصرانی) شراب او خنزير خرڅولو يا اخستلو نه روسته شراب او خنزير يا دده د ثمن ملكيت مؤكل يعنی مسلمان اړخ ته منتقل كيږی.ځكه چې د ملكيت منتقل كيدل غيراختيارى دی.اود مسلمان لپاره په غيراختيارى طريقه باندې د شراب او خنزير يا ددې د ثمن ملكيت ثابتيدلې شی.حاصل داچه هركله په وكيل او مؤكل دواړو كې اهليت او لياقت موجود دې.نودا توكيل يعنی وكيل جوړول هم جائز شو.

ثُمَّ إِنْ كَانَ خَمْرًا بيا كه شراب وی يُخَلِّلُهَا نو ددې نه سركه جوړه كړی وَإِنْ كَانَ خِنْزِيرًا اوكه خنزير وی يُسَيِّبُهُ نودا



پرېږدي.

تشريح:- هركله دامام صاحب ﷫ په نيز دا توكيل جائز دې.اوددې په نتيجه كې د مؤكل يعنی مسلمان د شراب او خنزير مالك شو.نودې به په دې باندې څه كوی؟نود دې په ځواب كې علامه مرغينانی ﷫ فرمايی كه د مسلمان په ملك كې شراب وی.نو مسلمان دې ددې نه سركه جوړه كړی.او كه دده په ملك كې خنزير وی.نودا دې پريږدی.او كه ددې ثمن وی.نودا دې صدقه كړی.ځكه چې د شراب او خنزير كيدلو په وجه په دې كې خبث دې.او په كوم مال كې چې خبث وی.د هغې صدقه كول واجبيږی.په دې وجه ددې دواړو ثمن واجب التصديق دې.

## د غلام په خرڅولوكښې بعض شرطونه اود بيع د فساد حكم

قَالَ وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا فرمائی.اوكه يوكس خپل غلام په دې شرط خرڅ كړو عَلَى أَنْ يُعْتِقَهُ الْمُشْتَرِي چې مشتری دا آزاد كړی أَوْ يُدَبِّرَهُ يا دې مدبر كړی أَوْ يُكَاتِبَهُ يا دې مكاتب كړی أَوْ أَمَةً يانې وينځه په دې شرط خرڅه كړله عَلَى أَنْ يَسْتَوْلِدَهَا چې مشتری دا ام ولد جوړه كړی. فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو په دې ټولو صورتونوكې) بيع فاسد ده.

حل اللغة:- ① يستولد،ام ولده جوړول، ② يعتق،آزادوی، ③ يدبر،مدبر جوړوی، ④ عظم،غټوالې

تشريح:- مسئله داده.كه يوكس خپل غلام خرڅ كړلو.په دې شرط چې مشتری به دا آزادوی.يا په دې شرط چې مشتری به دا مكاتب كوی.يا په دې شرط چې مشتری به دا مدبر كوی.يا يوكس خپله وينځه په دې شرط باندې خرڅه كړله.چه مشتری به دا خپله ام ولد كوی.په دې ټولو صورتونوكې بيع فاسد ده.

لِأَنَّ هٰذَا بَيْعٌ وَشَرْطٌ ځكه چې دا بيع او شرط دې وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنْ بَيْعٍ وَشَرْطٍ(1) حالانكه رسول الله ﷺ د بيع اوشرط نه منع فرمائيلې ده.

تشريح:- دليل دادې.چه دا بيع مع شرط ده.او د بيع مع شرط نه نبی كريم ﷺ منع فرمائيلې ده.په دې وجه به په ذكرشوی صورتونوكې بيع فاسد وی.

ثُمَّ جُمْلَةُ الْمَذْهَبِ فِيهِ بيا حاصل مذهب په دې كې دادې أَنْ يُقَالَ: كُلُّ شَرْطٍ يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ چه هرداسې شرط چې عقد ددې تقاضا كوی كَشَرْطِ الْمِلْكِ لِلْمُشْتَرِي لَا يُفْسِدُ الْعَقْدَ لِثُبُوتِهِ لكه د مشتری لپاره بائع دملك شرط لګول، عقد نه فاسدوی بِدُونِ الشَّرْطِ ځكه چې د مشتری ملك دشرط نه بغير ثابت دې.

حل اللغة:- ① يقتضي،تقاضا كوی، ② يفسد،فاسدوی، ③ المنفعة،فائده، ④ الاستحقاق،مستحق كيدل

تشريح:- علامه مرغينانی ﷫ د بيع او شرط په سلسله كې يوه قاعده بيان كړې ده.چه د هغې حاصل دې.چه د شرط څو قسمونه دی. ① هغه شرط د كوم چې عقد تقاضا كوی.يعنی په شرط لګولو سره به هم هغه فائده حاصليږی.كومه چې په مطلق عقد سره ثابتيږی.لكه مثلا غلام ئې په دې شرط سره خرڅ كړلو.چه مشتری به د غلام مالك شی.ښكاره ده.كه دا شرط ئې نه ذكركولو.بيا به هم مشتری د غلام مالك كيدلو.په داسې ډول كې بيع جائز ده.او شرط يوزياتی شئ دې.يعنی دشرط كيدل اونه كيدل دواړه برابر دی.

السوال:كه دا سوال اوكړې شی.چه رسول الله ﷺ د بيع اوشرط نه منع فرمائيلې ده.اودا حديث د خپل مطلق كيدلو په وجه د بيع د عدم جواز تقاضا كوی.په دې وجه په دې صورت كې بيع ناجائز كيدل پكار وو.حالانكه تا جائز وئيلې دی؟

الجواب:ددې ځواب دادې.چه دا په حقيقت كې شرط نه دې.ځكه چې دې شرط د هغه شئ افاده اوكړله.چه د كوم مطلق عقد فائده وركوی.نو ددې شرط كيدل،يا نه كيدل دواړه برابر دی.

وَكُلُّ شَرْطٍ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ اوهر داسې شرط چې عقد ددې تقاضا نه كوی وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او په دې كې د

(1) من حديث عبدالوارث بن سعيد ... عزاه الهيثمي رحمه الله إلى الطبراني في الأوسط مجمع الزوائد(٤/٨٥)_

بائع یا مشتری د یوکس نفع وی أَوْلِلْمَعْقُودِعَلَيْهِ یا د معقود علیه نفع وی وَهُوَمِنْ أَهْلِ الْاِسْتِحْقَاقِ په داسې حال کي چې معقودعلیه د مستحق کیدلو اهل دي يُفْسِدُهُ نودا شرط عقد فاسدوی.

تشریح:- هغه شرط چې عقد د هغې تقاضا نه کوی.او په دې شرط کي د بائع فائده وی.یا د مشتری،او یا د معقود علیه فائده وی.په دې شرط چې معقود علیه د اهل استحقاق ځنې وی.یعنی معقود علیه سړې وی.چه د خپل حق مطالبه کولي شی.

كَشَرْطِ أَنْ لَايَبِيعَ الْمُشْتَرِي الْعَبْدَ الْمَبِيعَ لکه داشرط چې مشتری به مبیع غلام نه خرڅوی لِأَنَّ فِيهِ زِيَادَةً عَارِيَةً عَنِ الْعِوَضِ ځکه په دې کي داسې زیاتوالې دې.کوم چې د عوض نه خالی دې. فَيُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا نودا به د رباء سبب وی.

حل اللغة:- ① العاریة،خالی ② ،العوض،بدله، ③ یودی،مفضی کیږی، ④ الربا،سود

تشریح:- مثلا بائع غلام خرڅ کړلو.اودا شرط ئې اولګولو.چه مشتری به دا غلام نه خرڅوی.په دې شرط کي معقودعلیه یعنی د غلام نفع ده.ځکه چې غلام د مختلف ډول خلګو غلام جوړول بدګنړی.او دې ددې مطالبه هم کوی.په دې صورت کي به بیع فاسد وی. په دې عبارت سره فساد وجه بیانوی.چه بائع اومشتری هرکله د مبیع اوثمن په مینځ کي مقابله اوکړله.یعنی ثمن ئې د مبیع مقابل اوګرځولو.نو شرط د عوض نه خالی شو.اوداسې زیاتوالې چې د عوض نه خالی وی.هغې ته ربوا وائی.ځکه ددې شرط په وجه ربوا لازمیږی.او ربوا ناجائز ده.او کوم شئ چې ناجائز امر ته ګډ وی.هغه ټخپله ناجائز وی.په دې وجه به بیع ناجائز او فاسد وی.

أَوْلِأَنَّهُ يَقَعُ بِسَبَبِهِ الْمُنَازَعَةُ اویا به ددې شرط په وجه به جګړه واقع کیږی فَيَعْرَى الْعَقْدُ عَنْ مَقْصُودِهِ نو عقد به د خپل مقصود نه خالی وی.

حل اللغة:- ① یقع،واقع کیږی، ② المنازعة،جګړه، ③ یعری،خالی کیږی، ④ مقصود،مقصد

تشریح:- د فساد بله وجه داده.چه ددې شرط په وجه جګړه پیدا کیږی.نود عقد چې کوم مقصود دې.یعنی د جګړې نه بغیر نفع حاصلول،ددې څخه به دا عقد خالی وی.په دې وجه دا شرط فاسد دې.د فساد په دویمه وجه خادم ته دا اشکال دې.چه هرکله بائع یا مشتری څه شرط اولګولو.او دده اندیوالان دا منظور کړلو.نو ددې شرط مطابق به عمل کیږی.په دې کي څه جګړه ده.بهتره به دا وه.چه فاضل مصنف رحمه الله داسې فرمائیلی وو.چه چونکه رسول الله ﷺ د بیع اوشرط نه منع فرمائیلې ده.په دې وجه په دې صورت کي بیع فاسد ده.

إِلَّا أَنْ يَكُونَ مُتَعَارَفًا مګر داچه شرط متعارف وی لِأَنَّ الْعُرْفَ قَاضٍ عَلَى الْقِيَاسِ ځکه چې عرف په قیاس باندې غالب دې.

تشریح:- هغه شرط چې په هغې کي احدالمتعاقدین ته نفع وی.او هغه شرط د عقد د مقتضی خلاف وی.خودا شرط متعارف وی.یعنی په عرف عام کي معمول بها وی.او ددې رواج وی.مثلا یوکس پیزار په دې شرط واخستل.چه بائع به په دې کي تسمه هم لګوی.نودا بیع به فاسد نه وی.ځکه چې کوم شئ په عرف سره ثابت وی.ګویا دا په دلیل شرعی سره ثابت وی.ځکه چې د شارع ﷺ ارشاد دې. «مارآه المسلمون حسناً فهو عندالله حسن» یعنی عام طور چې مسلمانان څه خوښ کړی.هغه د الله تعالی په نیزهم خوښ وی.یا دا چې کوم حکم په عرف عام سره ثابت وی.او اجماع سره ثابت وی.او اجماع حجت شرعی دې. په دې وجه د عرف اوقیاس په مینځ کي د تعارض په صورت کي عرف ته په قیاس باندې ترجیح حاصل وی.

وَلَوْكَانَ لَايَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ اوکه شرط داسې وی.چه عقد ددې تقاضا نه کوی وَلَامَنْفَعَةَ فِيهِ لِأَحَدٍ او په دې کي د چا نفع هم نشته. لَايُفْسِدُهُ نودا شرط عقد نه فاسدوی وَهُوَالظَّاهِرُ مِنَ الْمَذْهَبِ او هم دا ښکاره مذهب دې كَشَرْطِ أَنْ لَايَبِيعَ الْمُشْتَرِي الدَّابَّةَ الْمَبِيعَةَ لکه دا شرط چې مشتری اخستونکې حیوان (څاروې) نه خرڅوی لِأَنَّهُ انْعَدَمَتِ الْمُطَالَبَةُ فَلَايُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا ځکه چې مطالبه معدوم شوه.نو نه به د رباء نوبت راځی وَلَا إِلَى الْمُنَازَعَةِ اونه د جګړې.



حل اللغة:- ① یقتضی،تقاضا کوی، ② المنفعة،نفع، ③ الدابة،څاروې، ④ انعدمت،معدوم شو

تشریح:- هغه شرط چې عقد د هغې تقاضا نه کوی.خو په دې کي د چا نفع هم نه وی. لکه د بائع دا شرط لګول،چې مشتری به اخستې حیوان (څاروې) نه خرڅوی.په دې صورت کي ښکاره مذهب دادې.چه بیع به صحیح وی. خو شرط به لغو وی.یعنی د شرط اعتبار به نه وی.ځکه چې ددې شرط په وجه مبیع یعنی حیوان (څاروې) مطالبه نه کوی.او مطالبه ځکه نه کوی.چه دې د مطالبې د استحقاق اهل نه دې.او هرکله چې مطالبه نشی کولې.نود ربوا معنی به هم نه لازمیږی.او نه به څه جګړه واقع کیږی.حالانکه هم دا دوې (دوه) خبرې مفسد د بیع وې.نو هرکله چې دواړه خبرې اونه موندې شوې.نو بیع به هم فاسد نه وی.د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه په دې صورت کي به بیع فاسد وی.اوظاهرمذهب عدم فساد دې

## د غیر مقتضی عقد شرط حکم

إِذَا ثَبَتَ هٰذَا هرکله چې دا قاعده ثابت شوه فَنَقُولُ: إِنَّ هٰذِهِ الشُّرُوطَ لَايَقْتَضِيهَا الْعَقْدُ نو موږ وایو.چه عقد ددې شرطونو تقاضا نه کوی لِأَنَّ قَضِيَّتَهُ الْإِطْلَاقُ فِي التَّصَرُّفِ وَالتَّخْيِيرُ ځکه چې د عقد تقاضا په تصرف کي اطلاق او اختیار دې لَا الْإِلْزَامُ حَتْمًا حتماً الزام نه دې وَالشَّرْطُ يَقْتَضِي ذٰلِكَ حالانکه شرط ددې تقاضا کوی وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِلْمَعْقُودِعَلَيْهِ او په دې شرط کي د معقود علیه نفع ده.

حل اللغة:- ① التصرف،تصرف کول، ② التخییر،اختیارورکول، ③ حتم،یقینی، ④ المنفعة،فائده

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه هرکله د شرط په سلسله کي قاعده معلومه شه.نو اوګورئ.چه په متن کي ذکر شوی واړه شرطونه د مقتضی عقد خلاف دی.ځکه چې عقد دا غواړی.چه مشتری ته د هرقسمه تصرف اجازت وی.او ده ته د آزادولو یا دنه آزادولو پوره پوره اختیار وی.عقد دا نه غواړی.چه په مشتری باندې آزادول وغیره واجب وی.او شرط هم دا غواړی.چه په مشتری باندې آزادول وغیره لازم او واجب وی.او په دې شرط کي معقودعلیه یعنی د غلام نفع هم ده.نود عقد په تقاضو اود شرط تقاضوکي منافات واقع شو.او دواړو کي یوته هم ترجیح حاصل نه ده.په دې وجه موږ په دواړو باندې عمل اوکړو.او موږ آووئیل.چه بیع فاسد ده.یعنی د ذات په اعتبار سره مشروع ده.اود وصف په اعتبار سره غیرمشروع ده.نوچونکه د عقدبیع رکن اوموندې شو.په دې وجه دا بیع مشروع ده.چونکه د مقتضی عقد خلاف شرط موجود شو.په دې وجه دا بیع غیرمشروع ده.او کومه بیع چې د ذات په اعتبار سره مشروع،اود وصف په اعتبار سره غیرمشروع وی.هغه فاسد وی.په دې وجه به دا بیع فاسد وی.

وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ وَإِنْ كَانَ يُخَالِفُنَا فِي الْعِتْقِ او امام شافعی رحمه الله اګرچه د آزادولو په شرط کي زموږ مخالف دې وَيَقِيسُهُ عَلَى بَيْعِ الْعَبْدِ نَسَمَةً اودا قیاس کوی غلام د نسمه په طور خرڅولو باندې فَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَاذَكَرْنَاهُ نود امام شافعی رحمه الله خلاف حجت هغه دې.کوم چې موږ ذکرکړو. وَتَفْسِيرُ الْمَبِيعِ نَسَمَةً او غلام د نسمه په طور د خرڅولو تفسیر دادې أَنْ يُبَاعَ مِمَّنْ يَعْلَمُ چې دا غلام دداسې کس په لاس خرڅ کړې شی.چه دده د حال نه دا معلومه وی. أَنَّهُ يُعْتِقُهُ چې دې به دا غلام آزادوی لَاأَنْ يُشْتَرَطَ فِيهِ دا نه چې په خرڅولو کي د آزادولو شرط اوکړی.

حل اللغة:- ① العتق،آزادیدل، ② الحجة،دلیل، ③ نسمة،بیع په شرط د عتق سره

تشریح:- حضرت امام شافعی رحمه الله په مدبر کولواو مکاتب کولو،اود ام ولد کولوشرط سره د بیع په فاسد کولوکي موږ سره دې.خو په،، بیع بشرط العتق،، کي زموږ په خلاف دې.لکه چې دده نه یو روایت دې.چه د آزادولو په شرط سره خرڅول جائز دی.او امام شافعی رحمه الله دا په،، بیع العبدنسمة،، باندې قیاس کوی.او په مبسوط کي د،، بیع العبد نسمة،، تفسیر په،، بیع بشرط العتق،، سره شوې ده.یعنی د،، بیع العبد نسمة،، تفسیر دادې.چه غلام آزادولو شرط باندې خرڅ کړې شی.ددې مطلب داشو.چه امام شافعی رحمه الله بیع بشرط العتق په بیع بیع بشرط العتق باندې قیاس کوی.اودا قیاس شئ علی نفسه د قبیلې ځنې دې.او قیاس شئ علی نفسه باطل وی.په دې

وجه دا قیاس باطل دي.

سوال: که څوك دا اووائي.چه حضرت عائشه ﷺ حضرت بريره ﷺ د آزادولو په شرط سره اخستې وه.او رسول الله ﷺ دا جائز هم ګرځولي وه.ددې نه ثابته شوه.چه د غلام بيع بشرط العتق جائز ده.

خواب: دادې.چه حضرت عائشې ﷺ حضرت بريره ﷺ د څه شرط نه بغير مطلقاً اخستې وه.البته دې سره ئې د آزادولو وعده کړې وه.چه بريره ﷺ راضي شي.او وجه داوه.چه حضرت بريره ﷺ مکاتبه وه.اود مکاتبه بيع، ددې د رضامندئ نه بغير جائز نه وي.په دې وجه حضرت عائشې ﷺ ددې د آزادولو وعده اوکړله.او مخکې ئې بريره ﷺ راضي کړله.بيا ئې دا ددې د مولا نه واخستله.اود اعتاق خپله وعده ئې پوره کړله.دې ته د آزادولو په شرط سره اخستل نه وائي.(عنايه)

د امام شافعي ﷺ د مستدل نه خواب دادې.چه د حضرت امام شافعي ﷺ خلاف هغه حديث او عقلي دليل هم حجت دې.کوم چې موږ ذکر کړې دې.يعنې ﴿نهى النبي ﷺ عن بيع وشرط﴾ اوعقلي دليل دا دې چې ددې شرط په وجه جګړه پيدا کيدل دي.اود،، بيع العبد نسمة،، تفسير دادې.چه غلام دداسې کس په لاس خرڅ کړې شي.چه د هغه د حال نه دا معلوميږي.چه دې به دا غلام آزاده وي.دا مطلب هيڅ کله هم نه دې.چه د غلام آزادولو شرط اوکړي.او په دې تفسير سره د غلام په خرڅولوکې هيڅ باك نشته.ددې د جواز خو موږه هم قائل يو.

فَلَوْ أَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِي بَعْدَ مَا اشْتَرَاهُ بِشَرْطِ الْعِتْقِ بيا که مشتري د آزادولو په شرط باندې غلام واخستلو.او آزاد ئې کړلو بعداً صَحَّ الْبَيْعُ نود ابوحنيفه ﷺ په نيز بيع صحيح شوه حَتّٰى يَجِبَ عَلَيْهِ الثَّمَنُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ (1) تردې چې په مشتري به ثمن واجب وي.

تشريح:- علامه مرغيناني ﷺ فرمائي.سره ددې چه،، بيع بشرط العتق،، ناجائز ده.خو که يوکس د آزادولو په شرط سره غلام خرڅ کړلو.او مشتري واخستلو.دا ئې آزاد هم کړلو.نود حضرت امام ابوحنيفه ﷺ په نيز دا بيع صحيح کيږي.تردې چې په مشتري باندې به ثمن واجب وي.ځکه چې د بيع د فساد په صورت کې په مشتري باندې قيمت واجبيږي.

وَقَالَا: او صاحبين ﷺ فرمائي يَبْقٰى فَاسِدًا چې بيع به فاسد وي حَتّٰى يَجِبَ عَلَيْهِ الْقِيمَةُ تردې چې په ده به قيمت واجب وي لِأَنَّ الْبَيْعَ قَدْ وَقَعَ فَاسِدًا ځکه چې بيع فاسد واقع شوې وه فَلَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا نو په جواز به نه بدليږي كَمَا إِذَا تَلِفَ بِوَجْهٍ آخَرَ لکه چې دا غلام په څه بله وجه تلف شوې وي.

حل اللغة:- ① تلف،هلاك شو،② وقع،واقع شو،③ ينقلب،ګرځي،④ يبقى،پاته کيږي

تشريح:- صاحبين ﷺ فرمائي چې لکه څنګه وړاندې فاسده وه هغه شان به بيع فاسده وي او په مشتري به قيمت واجب وي ځکه چې کله بيع فاسده وي نو په مشتري باندې قيمت واجب وي.

صاحبينو ﷺ دليل دادې.چه د،، مقتضى عقد،، په خلاف شرط لګولو په وجه بيع ابتداءً فاسد وه.او قاعده ده. ﴿الفاسد لاينقلب جائزاً﴾ يعنې کوم چې فاسد منعقد شي.هغه جائز کيدلو باندې نه بدليږي.لکه مثلاً يو غلام د آزادولو نه علاوه د بل څه په وجه هلاك شي.مثلاً د قبضه کاوه نه روسته مشتري سره مړشي.يا قتل شي.نو په دې صورت کې بيع فاسد وي.او په مشتري باندې قيمت واجبيږي.دغه ډول د مشتري د آزادولو په صورت کې هم بيع فاسديږي.او لکه څنګه چې د غلام په مدبر کولو.يا په مکاتب کولو.يا دام ولد کاوه په شرط سره خرڅ کړي.او مشتري دا شرط پوره کړلو.نودا بيع به هم هغه شان فاسد وي.په جائز کيدلو به نه بدليږي.او په مشتري به قيمت واجب وي.دغه ډول د آزادولو په صورت کې هم بيع فاسديږي.او په مشتري به قيمت واجب وي.

(1) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷺ كذا في الدرالمنتقى (۶۳\۲) والهندية (۱۳\۳) وحاشية الزيلعي (۵۷\۴) نقلاً عن القول الراجح (۴۶\۲)۔



وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود ابوحنيفه ﷺ دليل دادې أَنَّ شَرْطَ الْعِتْقِ مِنْ حَيْثُ ذَاتِهِ لَا يُلَائِمُ چې د آزادئ شرط کول د خپل ذات په اعتبار سره مناسب د عقد نه دې الْعَقْدَ عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ په هغه دليل چې موږ ذکر کړې دې وَلٰكِنْ مِنْ حَيْثُ حُكْمِهِ يُلَائِمُهُ خو من حيث الحکم مناسب د عقد دې لِأَنَّهُ مُنْهٍ لِلْمِلْكِ ځکه چې دا ملکيت پوره کونکې دې وَالشَّيْءُ بِانْتِهَائِهِ يَتَقَرَّرُ او شئ پخپل پوره کيدو سره مستحکم کيږي وَلِهٰذَا لَا يَمْنَعُ الْعِتْقُ الرُّجُوعَ بِنُقْصَانِ الْعَيْبِ په دې وجه آزادول د نقصان عيب واپس اخستلو نه مانع نه دې.

حل اللغة:- ① يلائم،مناسب دې،② الانتهاء،پوره کيدل،③ يتقرر،ثابتيږي،④ العتق،آزاديدل

تشريح:- دحضرت امام ابوحنيفه ﷺ دليل دادې.چه د آزادئ شرط لګول د خپل ذات په اعتبارسره ددې عقد مناسب نه دې.لکه چې موږ وړاندې ذکرکړې دې.چه د آزادولو قيد د مشتري د اختيار نه مغاير دې.خود خپل حکم په اعتبارسره ددې عقد مناسب دې.ځکه چې آزادي د مشتري ملکيت پوره کونکې دې.او شئ چې خپلې انتهاء ته اورسي.نو مستحکم او مضبوطيږي.نوکه مشتري د غلام آزادولو نه روسته دده په څه عيب باندې خبرشو.نو مشتري ته د خپل بائع نه دنقصان عيب واپس اخستلو اختيار شته.نود غلام آزادولو باوجود د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار پاته کيدل ددې خبرې دليل دې.چه د مشتري مليکيت نه دې ختم شوې.بلکه خپلې انتهاء ته رسيدلي دې.او مستحکم شوې دې.

فَإِذَا تَلِفَ مِنْ وَجْهٍ آخَرَ نو کله چې په بله څه وجه تلف شو لَمْ تَتَحَقَّقِ الْمُلَاءَمَةُ نو مناسبت به نه ثابتيږي فَيَتَقَرَّرُ الْفَسَادُ نو فساد به هم مستحکم کيږي وَإِذَا وُجِدَ الْعِتْقُ او هرکله چې آزادي اوموندې شوه تَحَقَّقَتِ الْمُلَاءَمَةُ نو مناسبت هم متحقق شو فَيَتَرَجَّحُ جَانِبُ الْجَوَازِ او د جواز اړخ راجح شو فَكَانَ الْحَالُ قَبْلَ ذٰلِكَ مَوْقُوفًا نو ددې نه وړاندې به عقد موقوف وي.

حل اللغة:- ① الملائمة،مناسبت،② الجانب،طرف،③ يترجح،ترجح ورکولې شي،④ تحقق،ثابت شو

تشريح:- اوکه غلام که په مرګ يا قتل وغيره سره هلاك شو.نود شرط عتق،عقد سره مناسب کيدل متحقق نشو.بلکه فساد نور هم زيات مضبوط شو.اوهرکله چې عتق بياموندې شو.نود شرط عقدسره مناسب کيدل متحقق شو.اود جواز طرف، د فساد په اړخ باندې راجح شو.نود آزادولو نه وړاندې به د بيع حال موقوف وي.يعنې که د اعتاق په شرط ئې غلام خرڅ کړلو.نود بيع جواز او فساد به موقوف وي.لکه که غلام د اعتاق نه علاوه په څه بل څه وجه هلاك شو.نود بيع فاسد کيدل مستحکم کيږي.اوکه مشتري دا آزاد کړلو.نو بيع به تمام او جائز وي.حالانکه په ابتداء کې فاسد وه.

## په بيع کښې بعض شرطونه اود هغې حکم

قَالَ وَكَذٰلِكَ لَوْ بَاعَ عَبْدًا فرمائي.اوهم دغه ډول که غلام ئې په دې شرط خرڅ کړو عَلٰى أَنْ يَسْتَخْدِمَهُ الْبَائِعُ شَهْرًا چې بائع به دده نه يوه مياشت خدمت اخلي أَوْ دَارًا يا ئې کور په دې شرط خرڅ کړو عَلٰى أَنْ يَسْكُنَهَا چې بائع به په دې کې اوسيږي أَوْ عَلٰى أَنْ يُقْرِضَهُ الْمُشْتَرِي دِرْهَمًا يا په دې شرط باندې مشتري بائع ته يو درهم قرضه ورکړي أَوْ عَلٰى أَنْ يُهْدِيَ لَهُ هَدِيَّةً يا په دې شرط چې مشتري بائع ته څه هديه ورکړي.

حل اللغة:- ① استخدم،خدمت به اخلي،② شهر،مياشت، پور ، پور ورکوي،③ يهدى،هديه ورکوي

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس غلام په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه دا غلام به يوه مياشت زما خدمت کوي.يا ئې کور په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه بائع به يوه مياشت په دې کې اوسيږي.يا ئې په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه بائع ته يو درهم پور ورکړي.يا ئې په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه مشتري بائع ته څه هديه ورکړي.په دې ټولو صورتونوکې بيع فاسد ده.

لِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ خكه دا داسې شرط دې چه عقد ددې تقاضا نه كوي وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او په دې كې د احد المتعاقدين نفع ده وَلِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعٍ وَسَلَفٍ (١) او خكه چې نبى كريمﷺ د بيع او پور نه منع فرمائيلې ده.

تشريح:- دليل دادې چه دا واړه شرطونه د مقتضى عقد خلاف دى. او په دې شرطونو كې د احد العاقدين يعنى د بائع نفع هم ده. او كوم شرط چې د مقتضى عقد خلاف وى. او په دې كې د احد المعاقدين نفع وى. هغه مفسد د بيع وى. په دې وجه به په دې شرطونو سره بيع فاسد وى.

دوهم دليل دادې چه رسول اللهﷺ بيع او پور جمع كاوه نه منع فرمائيلې ده. يعنى د داسې بيع نه ئې منع فرمائيلې ده. چې په هغې كښې شرط ذكر وى. چه مشترى به بائع ته پور هم وركوى.

وَلِأَنَّهُ لَوْ كَانَ الْخِدْمَةُ وَالسُّكْنَى يُقَابِلُهُمَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ او خكه كه د غلام نه د خدمت اخستلو، او په كور كې د اوسيدلو په مقابله كې د ثمن څه برخه وى يَكُونُ إِجَارَةً فِي بَيْعٍ نو په بيع كې به دننه اجاره شى وَلَوْ كَانَ لَا يُقَابِلُهُمَا اوكه د خدمت او اوسيدلو دواړو په مقابله كې د ثمن هيڅ برخه نه وى يَكُونُ إِعَارَةً فِي بَيْعٍ نو په بيع كې دننه به اعاره شى {وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ صَفْقَتَيْنِ فِي صَفْقَةٍ} (٢) حالانكه رسول اللهﷺ په يوه صفقه كې دننه دوې (دوه) صفقې جمع كاوه نه منع فرمائيلې ده.

حل اللغة:- ① السكنى: ستوګنه، ② يقابل: مقابله كوى، ③ الاعارة: خواست، ④ صفقتين: تثنيه د صفقه، معامله. ⑤ تغير-بدليدل ⑥ تحقق-ثابتيدل-⑦ زيادة-زياتوالې-⑧ عظم-غټوالې

تشريح:- دريم دليل دادې چه د غلام نه د خدمت اخستلو، او په كوركې د اوسيدلو په مقابله كې به د ثمن څه برخه وى. يا به نه وى؟ كه ددې دواړو په مقابله كې د ثمن څه برخه وى. نودا به په بيع كې اجاره وى. او كه ددې په مقابله كې ثمن نه وى. نودا به په بيع كې په عاريت (قرض) سره اخستل وى. يعنى په بيع كې به يا اجاره داخل وى. يا به اعاره داخل وى. حالانكه مدنى آقا رسول هاشمىﷺ په يوه معامله كې د دوې (دوه) معاملو نه منع فرمائيلې ده. يعنى يوه معامله په بله معامله كې داخلول، او دواړه جمع كاوه نه ئې منع فرمائيلې ده. نو ددې حديث نه ثابته شوه چه د خدمت اخستلو، او په كوركې د اوسيدلو شرط لګول فاسد دى. په دې وجه به بيع فاسد وى.

### د مياشتې پيل پورې د نه سپارلو په شرط سره د بيع حكم

قَالَ وَمَنْ بَاعَ عَيْنًا فرمائى. كه يوكس عين شئ په دې شرط خرڅ كړو عَلَى أَنْ لَا يُسَلِّمَهُ إِلَى رَأْسِ الشَّهْرِ چې دې به دا د مياشتې رومبئ شپې پورې نه سپارى فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده.

حل اللغة:- ① يسلم: سپارى، ② راس: اول، ③ الاجل: نيټه، ④ الترفيه: آسانتيا

تشريح:- مسئله: كه يوكس مال عين يعنى دراهم او دنانير نه علاوه څه متعين شئ په دې شرط سره خرڅ كړلو. چه مبيع به په رومبى تاريخ يا په آخرى تاريخ دركوم. نودا بيع فاسد ده.

علامه مرغينانى رحمه الله د بيع نه روسته لفظ د ،، عين ،، زيات كړې دې. چه مسلم فيه خارج شى. خكه چې په بيع سلم كې ،، مسلم فيه ،، مبيع وى. خو عين نه وى. بلكه د مسلم اليه په ذمه كې واجب وى. او ددې سپارل د يوې مودې نه روسته كيږى. په دې وجه د مسلم فيه لپاره اجل او ميعاد مناسب دې.

(١) من حديث عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنه أخرجه أبوداود فى البيوع باب ٦٨ رقم ٣٥٠٤ والنسائى فى البيوع باب شرطان فى بيع رقم ٤٣١٦ الترمذى فى البيوع باب ١٩ رقم ١٢٣٤)_

(٢) من حديث عبدالله بن مسعود عن أبيه أخرجه أحمد فى مسنده (٣٩٨/١) والبزار كذا عزاه إليه الهيثمى رحمه الله فى مجمع الزوائد(٨٤/٤)_



لِأَنَّ الْأَجَلَ فِي الْمَبِيعِ الْعَيْنِ بَاطِلٌ خكه چې په بيع عين كې ميعاد باطل دې فَيَكُونُ شَرْطًا فَاسِدًا، نودا شرط به فاسد وى وَهَذَا لِأَنَّ الْأَجَلَ شُرِعَ تَرْفِيهًا خكه چې ميعاد آسانتيا لپاره مشروع شوې دې فَيَلِيقُ بِالدُّيُونِ نودا د ديون لائق دې دُونَ الْأَعْيَانِ د اعيان لائق نه دې.

تشريح:- دليل دادې چه مهلت او وخت مقررول د آسانئ لپاره مشروع شوې دې. يعنى ميعاد خكه مشروع كړې شوې دې. چه په دې موده كې ددې شئ حاصلول آسان شى. د كوم لپاره چې وخت مقرر شوې وو. نو ميعاد (نيټه) د ديون يعنى د دراهم او دنانير مناسب ده. د اعيان مناسب نه ده. خكه چې مال عين خو بالفعل موجود دې. او دراهم او دنانير په كرار كرار (كرار كرار (يعنى په لږه لږه) لټون كولې شى. نو كوم شئ چې بالفعل موجود وى. په هغې كې د وخت مقررولو هيڅ اړتيا نشته. ګنى خامخا به د ،، تحصيل حاصل ،، مرتكب شى. البته كوم شئ چې بالفعل موجود نه وى. په هغې كې نيټه او مهلت وركول ګټور او كارآمد دى. نو هركله چې ميعاد د اعيان مناسب نه دى. نو په مبيع عين يعنى معين موجوده مبيع كې اجل او نيټه ذكر كول باطل شو. اود ميعاد شرط لګول به شرط فاسد دى. او په شرط فاسد سره چونكه بيع فاسد يږى. په دې وجه شرط سره بيع فاسد يږى.

### د حمل په استثناء سره د بيع حكم

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً فرمائى. اوكه يوكس وينځه واخستله إِلَّا حَمْلَهَا علاوه ددې د حمل نه فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده.

حل اللغة:- ① الجارية: وينځه، ② حمل: د رحم بچې، ③ اطراف: جمع د طرف، اندام، ④ يتناول: شامليږى

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. چه يوكس يوه وينځه واخستله. خو ددې د حمل استثناء ئې اوكړله. نودا بيع فاسد ده.

وَالْأَصْلُ او قاعده داده أَنَّ مَا لَا يَصِحُّ إِفْرَادُهُ بِالْعَقْدِ لَا يَصِحُّ اسْتِثْنَاؤُهُ مِنَ الْعَقْدِ، چې د كوم شئ جلا عقد كول صحيح نه دى. د هغې د عقد نه استثناء كول هم صحيح نه دى وَالْحَمْلُ مِنْ هَذَا الْقَبِيلِ، او حمل هم ددې ډول څخه دى وَهَذَا وَهَذَا، لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ أَطْرَافِ الْحَيَوَانِ او خكه چې حمل د حيوان د اطرافو په مرتبه كې دى لِاتِّصَالِهِ بِهِ خِلْقَةً خكه چې حمل مبيع سره مورزاده (پيدائشى) طور باندې متصل وَبَيْعُ الْأَصْلِ يَتَنَاوَلُهُمَا دې. اود اصل بيع اطرافو ته ګډ وى فَالِاسْتِثْنَاءُ يَكُونُ عَلَى خِلَافِ الْمُوجِبِ په دې وجه استثناء كول به دعقد د موجب خلاف وى فَلَا يَصِحُّ نو استثناء به صحيح نه وى فَيَصِيرُ شَرْطًا فَاسِدًا، او استثناء به يو شرط فاسد شى وَالْبَيْعُ يَبْطُلُ بِهِ او بيع به ددې په وجه باطل شى.

تشريح:- په كوم عقد كې چې استثناء شوې وى. نو دهغې يو ډول دا دې چې په هغې كې عقد او استثناء دواړه فاسد وى. لكه د كوم شئ چې جدا خرڅول جائز نه وى. د هغې د عقد بيع نه استثناء (جدا) كول هم جائز نه دى. او حمل هم ددې قبيلې څخه دې. يعنى حمل جلا خرڅول جائز نه دى. او د حمل جلا خرڅولو عدم جواز خكه دې. چه دا د حيوان اطراف يعنى د اندامونو په مرتبه كې دې. يعنى لكه څنګه چې د حيوان اطراف مورزاده (پيدائشى) طور باندې حيوان سره متصل وى. دغه ډول حمل هم ذى حمل سره متصل وى. اود حيوان بيع اطرافو (اندامونو) ته ګډ وى. په دې وجه د اطراف استثناء د موجب عقد خلاف دې. دغه ډول به د حمل استثناء هم د موجب عقد خلاف وى. او كوم شئ چې د موجب عقد خلاف وى. هغه صحيح نه وى. بلكه شرط فاسد وى. په دې وجه د حمل استثناء شرط فاسد دې. او په شرط فاسد سره بيع باطل وى. خكه به د حمل په استثناء سره بيع باطل وى.

وَالْكِتَابَةُ او كتابت وَالْإِجَارَةُ اجاره وَالرَّهْنُ، او رهن بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ د بيع په مرتبه كې دى لِأَنَّهَا تُبْطِلُ الشُّرُوطَ الْفَاسِدَةَ، خكه چې دا عقود هم په فاسد شرطونو سره باطليږى غَيْرَ أَنَّ الْمُفْسِدَ فِي الْكِتَابَةِ خود كتابت فاسدونكې هغه شرط دې مَا يَتَمَكَّنُ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ مِنْهَا كوم چې د عقد د قيمت په ذات كې وى.

حل اللغة:- ① صلب: مينځ، الاجارة: كرايه، ② الرهن: ګانړه، ③ المنزلة: پشان

**تشريح:-** او كتابت، اجاره، او رهن چونكه د بيع په معنى كې دي، ځكه چې دا درې واړه عقدونه د معاوضه په بدله كې وي ددې او په بيع كې هم عين د ثمن په عوض كې وي نو ځكه دا عقود ثلاثه د بيع په معنى كې دي په دې وجه به دا عقدونه هم په فاسد شرطونو سره باطليږي.

البته دومره توپير دې. چې بيع مطلقا په شرط فاسد سره باطليږي. شرط كه د بيع په ذات كې داخل وي، او كه په ذات كې داخل نه وي. او كتابت په داسې شرط سره باطليږي، كوم چې د عقد كتابت په ذات كې داخل وي. مثلاً مسلمان خپل غلام په شرابو يا په خنزير باندې مكاتب كړي. يعنى بدل كتابت شراب يا خنزير مقرر كړي. اوكه شرط د عقد كتابت په ذات كې داخل نه وي. مثلاً مولا په مكاتب باندې دا شرط اولګولو. چه دې به د ديوبند نه بهر نه اوځي. نو په دې صورت كې به عقد كتابت صحيح وي. او مكاتب ته به د ديوبند نه بهرته د تللو اجازت وي. يعنى دا شرط به پخپله باطل وي.

ددې دليل دادې. چه عقد كتابت د بيع د انتهاء مشابه دې. ځكه چې مكاتب د مولا په حق كې مال دې، ځكه چې مولا د مكاتب عوض مال يعنى بدل كتابت حاصلوي. اود نكاح مشابه دې. ځكه چې مكاتب پخپله دخپل ذات په حق كې مال نه دې، هم دا وجه ده. چه مكاتب ته د بدل كتابت په عوض كې څه مال نه حاصليږي. نو مونږ كتابت په داسې شرط كې (كوم چې د عقد كتابت په ذات كې داخل وي) د بيع سره لاحق كړو. يعنى لكه څنګه چې د شرط په وجه بيع فاسديږي. دغه ډول د داسې شرط په وجه (كوم چې د كتابت په ذات كې داخل نه وي) كتابت د نكاح سره لاحق كړلو. يعنى لكه څنګه چې نكاح شرط سره نه فاسديږي. بلكه پخپله شرط باطليږي. دغه ډول په داسې شرط سره (كوم چې د كتابت په ذات كې داخل نه وي) عقد كتابت هم نه باطليږي. بلكه شرط به پخپله باطل وي.

**وجه الفساد**⊛ په دې ډول اول كې فساد ځكه دې. چه شرط،، مفضى الى الربوا،، وو. او ربوا صرف په معاوضاتو كې متحقق كيږي.

| |
|---|
| وَالْهِبَةُ وَالصَّدَقَةُ وَالنِّكَاحُ وَالْخُلْعُ او هبه، صدقه، نكاح، خلع وَالصُّلْحُ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ او صلح عن دم العمد لَا تَبْطُلُ بِاسْتِثْنَاءِ الْحَمْلِ، دحمل په استثناء سره نه باطليږي بَلْ يَبْطُلُ الِاسْتِثْنَاءُ بلكه استثناء باطليږي لِأَنَّ هٰذِهِ الْعُقُودَ لَا تُبْطِلُ الشُّرُوطَ الْفَاسِدَةَ لكه چې دا عقود په شروط فاسده سره نه باطليږي. |

**حل اللغة:-** ① **حمل**،په كې رحم بچې، ② **دم**،وينه، ③ **العقود**،جمع د عقد ،تړل، ④ **تبطل**،باطليږي

**تشريح:-** په كوم عقد كې چې استثناء شوې وي. نودهغې دوهم ډول دا دې چې په هغې كې عقد صحيح وي. او استثناء باطل وي. لكه هبه، صدقه، نكاح، خلع او،، صلح عن دم العمد،، مثلاً مولا خپله وينځه چاته هبه كړله. خو ددې حمل نې هبه نكړلو. يا نې وينځه صدقه كړله. خو ددې حمل نې صدقه نكړلو. يا وينځه نې په نكاح كې مهرجوړ كړلو. او ددې حمل نې مستثنى كړلو. يا يوې ښځې خپل ميړه سره خلع اوكړله. او خپله وينځه نې بدل خلع مقرر كړله. خو ددې حمل نې په بدل خلع كې ګډ نكړلو. يا قاتل عمد په وينځه باندې صلح اوكړله. خو ددې حمل نې بدل صلح مقرر نكړلو. دا واړه عقدونه د حمل په استثناء كاوه سره نه باطليږي. بلكه پخپله استثناء باطليږي. او په عقد كې حمل او ددې مور دواړه داخل نه وي.

او په دې ډول ثانى كې چې. كوم عقدونه صدقه وغيره كې ذكر دي. دا واړه د تبرعات(احسانات) اود اسقاطاتو د قبيلې څنې دي. په دې كې ربوا نه متحقق كيږي. نو په كومو عقدونو كې چې فساد اونه مونډې شو. نود فاسد شرطونو په وجه به دا عقدونه فاسد نه وي. بلكه شرط فاسد پخپله باطليږي. البته هبه اګرچه د تمليكاتو د قبيلې څنې ده. خو په شرط فاسد سره ددې نه فاسيدل په نص سره معلوم شو. چه رسول الله ﷺ هبه په دې شرط سره جائز ګرځولې ده. چه د موهوب له دمرګ نه روسته شئ موهوب، هبه كونكى ارخ ته واپس كولې شى. نودا هبه درست ده. او شرط باطل دې. تردې چې د موهوب له د مرګ نه روسته شئ موهوب، د موهوب له وارثانو ته وركولې شى. واهب ته نشى وركولې. او نه د واهب وارثانو ته وركولې شى. ددې حديث نه معلومه شوه. چه هبه اګرچه د تمليكاتو د قبيلې څنې ده. خو په شرط فاسد سره نه باطليږي. بلكه شرط فاسد پخپله باطليږي.



| |
|---|
| وَكَذَا الْوَصِيَّةُ لَا تَبْطُلُ بِهِ، او هم دغه ډول وصيت هم د حمل په استثناء كاوه سره نه باطليږي لَكِنْ يَصِحُّ الِاسْتِثْنَاءُ خو استثناء به صحيح وي حَتّٰى يَكُونَ الْحَمْلُ مِيرَاثًا تردې چې حمل به ميراث وي وَالْجَارِيَةُ وَصِيَّةً او وينځه به وصيت وي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ أُخْتُ الْمِيرَاثِ ځكه چې وصيت د ميراث خور ده وَالْمِيرَاثُ يَجْرِي فِيمَا فِي الْبَطْنِ او ميراث په داسې شئ كې جاري كيږي، كوم چې په نس كې وي. |

**حل اللغة:-** ① **الجارية**،وينځه ② ، **اخت**،خور ، ③ **يجري**،جاري كيږي، ④ **البطن**،خيټه

**تشريح:-** په كوم عقد كې استثناء شوې وي. نود هغې دريم ډول دا دې چې په هغې كې عقد او استثناء دواړه صحيح وي. مثلاً يوكس په مرض الموت كې د يوسړي لپاره د خپلې وينځې وصيت اوكړلو. او ددې حمل نې مستثنى كړلو. يعنى د حمل وصيت نې اونكړلو. نود حمل په استثناء سره به وصيت نه باطليږي. او استثناء به هم ټيك وي. نود وصيت په نتيجه كې به وينځه د موصى له(د كوم كس لپاره چې وصيت شوې دې) لپاره وي. او حمل يعنى پيداكيدونكې بچې به د وارثانو لپاره ميراث وي. وصيت به ځكه باطل نه وي. چه دا عقد معاوضه نه دې. او هركله چې وصيت عقد معاوضه نه دې. نود شرط فاسد په وجه به نه باطليږي. او استثناء ځكه درست ده. چه وصيت د ميراث خور يعنى مثال دې. ځكه چې د دواړو نفاذ د مرګ نه روسته كيږي. او ميراث داسې شئ دې چه په نس كې دې. يعنى په حمل كې جاري كيږي. ځكه چې حمل عين شئ دې. او په اعيان كې وراثت جاري كيږي. په دې وجه به حمل كې ميراث جاري كيږي.

| |
|---|
| بِخِلَافِ مَا إِذَا اسْتَثْنٰى خِدْمَتَهَا په خلاف ددې چې ددې د خدمت استثناء نې كړې وي. لِأَنَّ الْمِيرَاثَ لَا يَجْرِي فِيهَا ځكه چې په خدمت كې ميراث نه جاري كيږي. |

**تشريح:-** ددې په خلاف كه د وينځې نې دچا لپاره وصيت اوكړلو او ددې دخدمت استثناء نې اوكړله نودا استثناء به صحيح نه وي. ځكه چې د خدمت عين شئ نه كيدلو په وجه په دې كې وراثت نه جاري كيږي. او هركله چې ميراث نه جاري كيږي. نود وينځې د خدمت استحقاق به هم د موصى له وي. د وارثانو به نه وي.

**د كيږي په كټ كولو كښې د كرتې يا كوټ جوړولو شرط سره د بيع حكم**

| |
|---|
| قَالَ وَمَنِ اشْتَرٰى ثَوْبًا فرمائى. اوكه يوكس كپړه په دې شرط واخستله عَلٰى أَنْ يَقْطَعَهُ الْبَائِعُ چې بائع دا كټ كړي وَيَخِيطَهُ قَمِيصًا أَوْ قَبَاءً ددې نه كرته يا چوغه وركړي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده. |

**حل اللغة:-** ① **ثوب**،جامه، ② **القطع**،كټ كيدل، ③ **يخيط**،ګنډل، ④ **قباء**،چوغه

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې. چه يو سړي كپړه واخستله. اودا شرط نې اوكړو. چه بائع به دا كپړه كټ كوي. او ددې څخه به كرته جوړوي. يا به كوټ جوړوي. نودا بيع فاسد ده.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ شَرْطٌ ځكه دا داسې شرط دې لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ چې عقد ددې تقاضا نه كوي وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او په دې كې د احدالعاقدين نفع ده. |

**حل اللغة:-** ① **يقتضى**،تقاضا كوي، ② **منفعة**،فائده، ③ **المتعاقدين**،تثنيه د عاقد، ④ **صفقة**،معامله

**تشريح:-** ځكه چې دا شرط د مقتضى عقد خلاف هم دې. او په دې كې د احدالعاقدين يعنى دمشترى نفع هم ده. او كوم شرط چې د مقتضى عقد خلاف وي. او په دې كې د احدالعاقدين نفع وي. نودا مفسد د بيع وي. په دې وجه په دې شرط سره بيع فاسديږي.

| |
|---|
| وَلِأَنَّهُ يَصِيرُ صَفْقَةً فِي صَفْقَةٍ او ځكه چې دا په معامله كې دننه (بله) معامله ده. عَلٰى مَا مَرَّ لكه چې تيرشو. |

**تشريح:-** دوهم دليل دادې. چه كپړه پرې كول اود ګنډلو په مقابله كې به د ثمن څه برخه وي. يا به نه وي؟ كه ددې په مقابله كې د ثمن څه برخه وي. نو اجاره به په بيع كې داخله شى. او كه ددې په مقابله كې د ثمن څه برخه نه وي. نو

اعاره به په بيع کي داخله شي.او يوه معامله په بله معامله کي داخلول نه چونکه رسول الله ﷺ منع فرمائيلي ده.ځکه به دا عقد فاسد اوناجائز وي.(بنايه)

### په پيزار کښې د تسمه لګولو شرط

📖 وَمَنِ اشْتَرَى نَعْلًا وکه څوک ( څرمن) ئې په دې شرط واخستله عَلَى أَنْ يَحْذُوَهَا الْبَائِعُ چې بائع ددې نه پيزار ( څپلان ) جوړکړي يا د پيزار تسمه جوړه کړي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده قَالَ ﷺ: مَاذَكَرَهُ جَوَابُ الْقِيَاسِ مصنف ﷺ فرمائي.چه په متن کي مذکور قياسي حکم دې وَوَجْهُهُ مَا بَيَّنَّا او ددې وجه هغه ده.کومه چې موږ بيان کړې ده.

حل اللغة:- ① نعل،پڼره\څپلې،② يحذر،جوړوي،③ يشرك،تسمه جوړه کړي،④ الجواب،حکم

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوکس څرمن په دې شرط واخستله.چه بائع ددې نه پيزار جوړکړي.يا ئې پيزار په دې شرط واخستلو.چه بائع په دې کي تسمه اولګوي.نود قياس مطابق دا بيع فاسد ده.ځکه چې دا شرط د مقتضائي عقد خلاف هم دې.او په دې د مشتري نفع هم ده.

وَفِي الِاسْتِحْسَانِ: يَجُوزُ او استحساناً جائز ده. لِلتَّعَامُلِ فِيهِ ځکه چې په دې کي د خلګو تعامل ( رواج) دې فَصَارَ كَصَبْغِ الثَّوْبِ،نودا کپړه درنګ کاوه پشان شوه وَلِلتَّعَامُلِ جَوَّزْنَا الِاسْتِصْنَاعَ اود تعامل په وجه موږ په کاريګر باندې د څه شي جوړول جائز اوګرځول.

حل اللغة:- ① صبغ،رنګ کول،② الثوب،جامه،③ الاستصناع،څه څيز جوړول،④ التعامل،کوم شئ چې رواج کي وي

تشريح:- خود خلګو د تعامل په وجه استحساناً دا جائز اوګرځولې شوه.لکه څنګه چې د رنګريز لپاره کپړه د رنګ کاوه لپاره په اجاره باندې اخستل قياساً ناجائز دی.ځکه چې اجاره د منافع بيع نوم دې.او دلته کي عين شئ يعنی د رنګ بيع ده.نودا هم دغه ډول ناجائز ده.لکه څنګه چې د پيو څښلو لپاره غوا په اجرت باندې اخستل ناجائز دی.خو استحساناً د خلګو د تعامل په وجه رنګريز ته په اجرت باندې د اخستلو اجازت ورکړې شو.او هم ددې تعامل په وجه آرډر ورکول،اود يوڅيز جوړولو اجازت دې.حالانکه دا دمعدوم بيع ده.چه ددې جائز کيدل پکار نه وو.خو د خلګو د تعامل په وجه دا جائز اوګرځولې شوه.او تعامل اوعرف ته په قياس باندې ترجيح حاصل وي.په دې وجه په دې مسئلوکي تعامل بنا (بنياد) جوړکړې شو.اود جواز فتوی ورکړې شوې ده.اګرچه قياساً ناجائز دی.

### خاص غير معروف ورځ د بيع لپاره مقررکول

📖 قَالَ وَالْبَيْعُ إِلَى النَّيْرُوزِ وَالْمِهْرَجَانِ وَصَوْمِ النَّصَارَى وَفِطْرِ الْيَهُودِ او بيع د نوروز، مهرګان، د نصاری د روژو،اود يهوديانو د افطار په وعده باندې فاسد ده. إِذَا لَمْ يَعْرِفِ الْمُتَبَايِعَانِ ذَلِكَ فَاسِدٌ کله چې بائع او مشتري دا نه پيژني لِجَهَالَةِ الْأَجَلِ ځکه چې ميعاد مجهول دې وَهِيَ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ فِي الْبَيْعِ او په بيع کي جهالت مفضی الی المنازعه دې لِابْتِنَائِهَا عَلَى الْمُمَاكَسَةِ ځکه چې په ټال واړه ( چل ول) باندې مبنی دې.

حل اللغة:- ① نوروز،دسپرلی اوله ورځ،② مهرجان،د خزان اوله ورځ،③ الاجل،نيتيه،④ المنازعة،جګړه

تشريح:- نيروز، د نوروز نه معرب دې.ددې تکلم د ټولو نه وړاندې حضرت عمر رضي الله عنه فرمائيلې دې.يعنی کله چې کافرانو په دې ورځ کي خوشحالياني مناوولې.نو حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل. «كل يوم لنا نوروز» ،،زموږ لپاره هره ورځ نوروز ده،، نوروز د موسم بهار اوله ورځ ده.او،، مهرجان،، د مهرګان معرب دې.مهرګان د موسم خزان اوله ورځ ده.

صورت د مسئلې دادې.که يوکس څه سامان واخستلو.اود ثمن ادا کاوه لپاره ئې د نوروز ورځ يا د مهرګان ورځ مقررکړله.يا ئې دا اووئيل.چه په کومه ورځ نصاری روژې پيل کوي.په هغه ورځ به ادا کوم.يا ئې دا اووئيل.چه د يهودو د افطار په ورځ يعنی ددوی د اختر په ورځ به ئې ادا کوم.په دې ټولوصورتونوکي بيع فاسد ده.

وجه د فساد داده.چه هرکله بائع او مشتري ته ددې ورځو علم نشته.نود ثمن ميعاد( نيتيه) مجهول شوه.او په بيع



کي نيتيه مجهول کيدل چې په چل ول باندې ( دهوکه) مبنی ده.ځکه به د نيتې جهالت،، مفضی الی النزاع،،وي.اوکوم جهالت چې مفضی الی النزاع وي.هغه مفسد دبيع وي.په دې وجه به په دې صورتونوکي بيع فاسد وي.

إِلَّا إِذَا كَانَا يَعْرِفَانِهِ خو کله چې دواړه دا پيژني ( نوجائز ده) لِكَوْنِهِ مَعْلُومًا عِنْدَهُمَا ځکه چې بائع او مشتري ته ميعاد معلوم دې أَوْ كَانَ التَّأْجِيلُ إِلَى فِطْرِ النَّصَارَى يا ميعاد د نصاراى د افطار په وعده باندې وي بَعْدَمَا شَرَعُوا فِي صَوْمِهِمْ د ددوی د روژو پيل کيدلو نه روسته لِأَنَّ مُدَّةَ صَوْمِهِمْ مَعْلُومَةٌ بِالْأَيَّامِ ځکه چې ددوی د روژو موده د ورځو( په شمار) سره معلوم ده فَلَا جَهَالَةَ فِيهِ ځکه به موده کي جهالت نه وي.

حل اللغة:- ① يعرف،پيژني،② صوم،روژه،③ المدة،موده،④ ،الايام،جمع د يوم ،ورځ

تشريح:- البته که بائع او مشتري ذکر شوې ورځې پيژني.نو بيع به فاسد نه وي.ځکه چې په دې صورتونوکي بائع او مشتري ته ميعاد معلوم دې.اوکه د نصاری د روژو پيل کاوه نه پس، د نصاری افطار يعنی د اختر ورځ نيتيه مقررکړې شوه.نو بيا به هم بيع فاسد نه وي.ځکه چې په دې صورت کي ددوی د روژو تعداد معلوم دې.يعنی د صاحب عنايه رحمه الله د قول مطابق ددوی پنځوس روژې دی.اود ابن الهمام رحمه الله په قول پنځه پنځوس روژې دی.نود روژو پيل کيدلو نه روسته چې کله بيع اوشي.اود نصاری د اختر ورځ د ثمن ادا کاوه لپاره مقررکړې شوه.نو په دې صورت کي ددوی د اختر ورځ معلوم ده.ځکه چې د بيع په ورځ دا هم معلوم ده.چه څومره روژې تيرې شوې دی.او هرکله چې د تيرو شوو روژو علم دې.نو کومې چې پاتې دی.د هغې علم به هم وي.ځکه چې ددوی په مذهب کي پنځوس يا د پنځه پنځوسو نه زياتې روژې نه وي.حاصل داچه په دې صورت کي د نصاری د افطار ورځ معلوم ده.او هرکله چې د افطار ورځ معلوم ده.نو نيتيه مجهول نشوه.بلکه معلوم ده.اود نيتې معلوم کيدلو په صورت کي بيع فاسد نه وي.په دې وجه به په دې صورت کي بيع فاسد نه وي.

### د حاجيانو راتلو يا د فصلونو مختلف وختونه نيته مقررکول

📖 قَالَ وَلَا يَجُوزُ الْبَيْعُ إِلَى قُدُومِ الْحَاجِّ اود حاجيانو د راتلو ( په وعده) باندې بيع جائز نه ده وَكَذَلِكَ إِلَى الْحَصَادِ اوهم دغه ډول ( جائز نه ده) د فصل کټ کيدلو وخت وَالدِّيَاسِ ،اود غوبل کاوه وخت وَالْقِطَافِ وَالْجِزَازِ اود انګورو شو کاوه وخت،اود وړۍ کټ کاوه وخت پورې.

حل اللغة:- ① قدوم،دسفرنه راتګ ،② الحاج،حاجيان③ ،الحصاد،فصل کټ کول،④ الدياس،غوبل کول⑤ القطافه،دانګور کټ کولووخت،⑥ الجذاذ،د وړۍ کټ کولووخت،⑦ تتقدم،وړاندې کيږی،⑧ تتاخر،ورستو کيږی

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس اووئيل.چه مادا شيان په لس روپۍ واخستل. په دې شرط چې ثمن به هغه وخت ادا کوم.چه کله حاجيان خلګ راشي.يا ئې دا اووئيل.چه ثمن به هغه وخت اداکوم.چه کله فصل کټ کولې شي.يا ئې اووئيل.چه د غلې غوبل کاوه لکه نن سهار د تريشر کاوه وخت په وخت ادا کوم.يا د انګور شو کاوه په وخت به ادا کوم.يا د څاروو ايخته او وړۍ کټ کاوه په وخت اداکوم.په دې ټولو صورتونو کي بيع ناجائز ده.يعنی د ثمن ادا کاوه لپاره دا وختونه نيتيه مقررول جائز نه دی.ددې وختونو د ثمن ادا کاوه لپاره نيتيه مقررولو سره بيع فاسد يږی.

لِأَنَّهَا تَتَقَدَّمُ وَتَتَأَخَّرُ ځکه چې دا شيان وړاندې روسته کيږی.

تشريح:- دليل دادې.چه ددې څيزونو وختونه د ګرمۍ او يخنۍ په اختلاف سره مخکې کيږی.او روسته کيږی.نو ددې څيزونو لپاره هيڅ معلوم او متعين وخت نشو.او هرکله چې دا وختونه معلوم او متعين نه دی. نود ثمن ادا کاوه نيتيه مجهول شوه.اود نيتې مجهول کيدلو په صورت کي بيع فاسد يږی.په دې وجه به په دې صورتونو کي بيع فاسدوی.

**وَلَوْكَفَلَ إِلَى هٰذِهِ الْأَوْقَاتِ** او که ددې وختونو پورې ئې د پور کفالت اوکړو **جَازَ** نو جائز دې.

**تشريح:**- او که يوکس دا وختونه نيټه مقرر کړي. اود يوکس د پور کفيل جوړشي. نو دا کفاله جائز ده. يعنی مثلاً دا ئې اووئيل چه زه ستا د پور کفيل يم. اود حاجيانو په راتلو باندې يا د فصل د کټ کاوه په زمانه کې به ئې اداکوم. نو دا جائز دی.

**لِأَنَّ الْجَهَالَةَ الْيَسِيرَةَ مُتَحَمَّلَةٌ فِي الْكَفَالَةِ** ځکه چې په کفالت کې معمولی جهالت برداشت کولای شی **وَهٰذِهِ الْجَهَالَةُ يَسِيرَةٌ مُسْتَدْرَكَةٌ** اودا جهالت داسې معمولی دې. چه ددې تدارک (راګرځول) ممکن دې.

**حل اللغة:**- ① **اليسير**، کم، ② **الادراک**، رالاندې کول، ③ **الدين**، قرض، ④ **تحمتل**، احتمال لری

**تشريح:**- دليل دا دې چې کفاله معمولی جهالت برداشت کوی. اګرچه جهالت فاحشه نه برداشت کوی. او ددې ذکر شوی وختونو د کفاله لپاره نيټه مقررولوکې چې کوم جهالت دې. هغه جهالت يسيره (معمولی) دې. د هغې تدارک (راګرځول) ممکن دې.

**لِاخْتِلَافِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمْ فِيهَا** ځکه چې صحابه په داسې ډول مجهول موده کې مختلف دی.

**تشريح:**- او په دې وختونوکې جهالت يسيره ځکه دې. چه ددې وختونو په جهالت کې د صحابو﷡ اختلاف دې. چه دا جهالتونه د بيع د جواز لپاره مانع دی. اوکه مانع نه دی. لکه حضرت عائشه ﷞ فرمائی. چه ددې وختونو جهالتونه د بيع د جواز لپاره مانع نه دی. هم دا وجه ده. چه صديقه عائشه ﷞ د بيع الی العطاء د جواز قائله ده. عطاء هغه عطيه ته وئيلې شی. کوم به چې د بيت المال نه سالانه (کال په کال) په مسلمانانو باندې تقسيميدلو. ددې عطياتو په کال کې يوځل ملاويدل يقينی وو. خو ددې وخت به وړاندې روسته کيدلو. لکه څنګه چې د حاجيانو راتګ، د فصلونو کټ کيدل، د غلې غوبل کول، د انګورو شوکيدل، د وړئ او ويختو پرې کول په کال کې يو ځل ضرور کيږي. خو ددې وخت وړاندې روسته کيږی. نو که مشتری په دې شرط باندې څه شئ واخستلو. چه په عطيه ملاويدلو به ثمن ادا کوم. نود حضرت عائشه ﷞ په نيز دا بيع جائز ده. ګويا چې حضرت عائشه ﷞ داسې قسمه جهالتونه د بيع د جواز مانع نه ګڼړی. او حضرت ابن عباس ﷜ د بيع الی العطاء او داسې قسمه جهالتونو سره د بيع د جواز قائل نه وو. نو ددې ذکرشوی وختونو جهالتونه د بيع د جواز لپاره مانع او په نه مانع کيدلو کې د صحابه کرامو﷡ داختلاف په وجه خفت (کموالې) پيدا شو. او هرکله چې ددې وختونو په جهالتونوکې کموالې پيدا شو. نو ددې جهالت ته جهالت يسيره وائی.

**وَلِأَنَّهُ مَعْلُومُ الْأَصْلِ**، اوځکه کوم چې اصل دې. هغه معلوم دې **أَلَا يُرَى أَنَّهَا تَتَحَمَّلُ الْجَهَالَةَ فِي أَصْلِ الدَّيْنِ** آيا نه ګورې. چه د اصلی پور مجهول کيدل برداشت کولې شی. **بِأَنْ تَكَفَّلَ بِمَا ذَابَ عَلٰى فُلَانٍ** په دې طريقه چې (دا ئې اووئيل) څه ستا په فلانی سړی باندې واجب وی. زه د هغې کفيل يم. **فَفِي الْوَصْفِ أَوْلٰى** نو په وصف کې به په درجه اولی (جهالت برداشت کولې شی).

**تشريح:**- دوهم دليل دا دې. چه ددې اشياؤ اصل په دې کال کې معلوم الوقوع دې. يعنی د خبره قطعی طور باندې معلوم ده. چه دې کال به دحاجيانو راتګ کيږی. فصلونه به کټ کيږی. غله به غوبل کيږی. انګور به شوکولې شی. د خاروو ايخته به کټ کولې شی. خو د وړاندې او روسته والی وصف ئې مجهول دې. نو هرکله چې ددې څيزونو اصل معلوم الوقوع دې. او وصف ئې مجهول دې. نو ددې وختونو جهالت به جهالت يسيره وی. او کفاله چونکه جهالت يسيره برداشت کوی. په دې وجه به ددې وختونو نيټه جوړولوکې کفاله جائز وی.

**السوال﷩** پاتې شوه دا خبره چې کفالت جهالت يسيره ولې برداشت کوی؟ نو ددې ځواب دادې. چه کفاله ابتداءً د نذر مشابه ده. ځکه چې څومره قدرې په نذرکې الزام محض يعنی په خپل ځان باندې غيرلازم شئ لازم کول دی. دغه ډول ابتداءً کفيل هم په خپل ځان باندې غيرلازم پور لازم کوی. او کفاله انتهاءً د بيع مشابه ده. ځکه لکه څنګه چې بيع عقد معاوضه ده. دغه ډول کفاله هم انتهاءً عقد معاوضه ده. ځکه چې کفيل د پور کوم مقدار د



مکفول عنه د اړخه مکفول له ته ادا کوی. دې ددې عوض د مکفول عنه نه ددې په اندازه اخلی. نود انتهاء په اعتبارسره کفاله هم عقد معاوضه شوه. دا خبره منلې شوې ده. چه نذر جهالت يسيره او جهالت فاحشه دواړه برداشت کوی. او بيع دواړه نه برداشت کوی. نو موږ په کفاله کې د دواړو مشابهتونو اعتبار اوکړلو او موږ اووئيل چه کفالت جهالت يسيره برداشت کوی. لکه څنګه چې نذر جهالت برداشت کوی. او کفاله جهالت فاحشه نه برداشت کوی. لکه څنګه چې بيع جهالت نه برداشت کوی. حاصل داچه په جهالت يسيره کې د نذر د مشابهت اعتبارشوې دې. او په جهالت فاحشه کې د بيع د مشابهت اعتبار شوې دې.

علامه مرغينانی﷫ نوره هم ترقی اوکړله. او وې فرمائيل. چه په کفالت کې داصلی پور مجهول کيدل برداشت کولې شی. مثلاً وې وئيل. چه ستا څه هم په فلانی باندې واجب وی. زه د هغې کفيل يم. سره ددې چې دلته کې اصل قرضه مجهول ده. خو کفاله بيا هم جائز ده. نود وصف مجهول کيدل به په درجه اولی برداشت کولې شی. يعنی که د قرضه ادا کاوه موده مجهول شوه. او قرضه مجهول نه وی. نو کفاله به په درجه اولی جائز وی.

**بِخِلَافِ الْبَيْعِ** په خلاف د بيع **فَإِنَّهُ لَا يَحْتَمِلُهَا فِي أَصْلِ الثَّمَنِ**، ځکه چې په اصل ثمن کې جهالت نه برداشت کيږی **فَكَذَا فِي وَصْفِهِ** نو هم دغه ډول به ددې په وصف کې هم نه برداشت کيږی.

**تشريح:**- په خلاف د بيع، چه په دې کې د اصل ثمن مجهول کيدل نشی برداشت کولې. نود ثمن ادا کاوه وصف يعنی موده مجهول کيدل هم نه برداشت کيږی. نو وصف ثمن يعنی د ادا کاوه نيټه مجهول کيدل به هم د برداشت قابل نه وی.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ مُطْلَقًا** په خلاف ددې چې کله مطلقاً خرڅ کړی **ثُمَّ أَجَّلَ الثَّمَنَ إِلٰى هٰذِهِ الْأَوْقَاتِ حَيْثُ** بيا بائع ددې وختونو پورې ثمن مؤجل کړو **جَازَ** نو جائز دې.

**تشريح:**- البته که بيع ئې مطلق اوساتله. يعنی د ثمن ادا کاوه هيڅ نيټه ئې مقرر نکړله. بيا بائع په پورته ذکر شوی وختونوکې د يو وخته پورې د ثمن ادا کاوه مهلت ورکړلو. نودا جائز دی.

**لِأَنَّ هٰذَا تَأْجِيلٌ فِي الدَّيْنِ** ځکه چې دا په دين کې ميعادی مهلت دې **وَهٰذِهِ الْجَهَالَةُ فِيهِ مُتَحَمَّلَةٌ بِمَنْزِلَةِ الْكَفَالَةِ** او په پور اداکولوکې دا جهالت په منزله د کفالت برداشت کولې شی.

**حل اللغة:**- ① **التاجيل**، نيټه ورکول، ② **متحملة**، برداشت کونکې، ③ **اشتراط**، شرط کول، ④ **يبطل**، باطليږی

**تشريح:**- دليل دا دې چې اوس دا ثمن د قرضه په ادا کولوکې نيټه شوه. په اصل عقدکښې شرط لګول نشو. او په پور اداکولوکې داسې قسمه خفيف جهالت د کفاله په منزله برداشت کيږی.

**وَلَا كَذٰلِكَ اشْتِرَاطُهُ فِي أَصْلِ الْعَقْدِ**؛ او په اصل بيع کې ددې شرط لګول نه برداشت کيږی **لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالشَّرْطِ الْفَاسِدِ** ځکه چې عقدبيع په شرط فاسد سره باطليږی.

**تشريح:**- اګرچه دا شرط په اصل عقد کې نه برداشت کيږی. ځکه چې عقدبيع په فاسد شرطونو سره باطليږی. حاصل داچه که اخستل په دې شرط سره وی. چه د ثمن ادا کاوه نيټه دا وختونه دی. نو بيع فاسد ده. اوکه د عقدبيع نه روسته بائع مشتری ته د ثمن ادا کاوه لپاره دې وختونو پورې مهلت ورکړلو. نو بيع هم جائز ده. اودا مهلت هم جائز دې.

### د وختونو نيټو مقررولو نه روسته د ساقطولو حکم

**وَلَوْ بَاعَ إِلٰى هٰذِهِ الْآجَالِ** اوکه دې وختونوپورې ئې بيع اوکړله **ثُمَّ تَرَاضَيَا بِإِسْقَاطِ الْأَجَلِ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ النَّاسُ فِي الْحَصَادِ وَالدِّيَاسِ وَقَبْلَ قُدُومِ الْحَاجِّ** بيا بائع او مشتری د خلګو د فصلونو کټ کولو، اود غوبل کولو، اود حاجيانو راتګ ونه

وړاندې د میعاد په ساقطولو باندې راضي شو **جَازَ الْبَيْعُ أَيْضًا** ([1]) نو بیع جائز ده.

**حل اللغة:-** ① **اجال**،جمع د اجل ،نیټه، ② **تراضی**،خپلوکې راضی کیدل، ③ **اسقاط**،ساقطول، ④ **الحصاد**،فصل ریبل ⑤ **الدیاس**،غوبل کول، ⑥ **قدوم**،د سفرنه واپس راتګ ⑦ **ینقلب**،واپس ګرځي، ⑧ **وقع**،واقع شو

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې،چه یوسړی په ذکر شوی وختونوکې یو وخت نیټه مقرر کړله.او څه سامان ئې خرڅ کړلو.مثلاً په دې شرط ئې خرڅ کړلو.چه ثمن به د نوروز په ورځ، یا د حاجیانو د راتګ و په وخت ادا کوې.مشتري دا منظور کړلو.بیا ددې مشروط وخت راتګ و نه وړاندې بائع او مشتري دواړه ددې مشروط نیټې ساقطولو باندې راضي شو.نودا بیع جائز ده.

**وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ:** او امام زفر رحمه الله فرمايي **لَا يَجُوزُ** چې جائز نه ده **لِأَنَّهُ وَقَعَ فَاسِدًا** ځکه چې دا بیع فاسد واقع شوې وه **فَلَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا** نو په جواز به نه بدلیږي.

**تشریح:-** په مذکوره مسئله کې د امام زفر رحمه الله مذهب جواز دې .دلیل دادې،چه کوم عقد یوځل فاسد منعقد شي.هغه نه بدلیږي،چه جائز شي.نو هرکله چې د شرط فاسد په وجه بیع فاسد شوه.نواوس به دا عقد په جواز نه بدلیږي.اګرچه دا شرط فاسد ساقط شي.

**وَصَارَ** اودا داسې شوه **كَإِسْقَاطِ الْأَجَلِ فِي النِّكَاحِ إِلَى أَجَلٍ** لکه په میعادی نکاح کې ، میعاد ساقطول.

**حل اللغة:-** ① **اسقاط**،ساقطول، ② **الاجل**،نیټه، ③ **المنازعة**،جګړه، ④ **صلب**،مینځ ⑤ **ارتفع**،پوره شو، ⑥ **تقرر**،ثابتیدل، ⑦ **زائد**،زیاتی، ⑧ **یمکن**،ممکن دې

**تشریح:-** په دې عبارت کې د امام زفر رحمه الله قیاس بیانوی چې لکه څنګه چې د امام صاحب رحمه الله په نیز که د یوې مودې لپاره نکاح اوکړې شوه.بیا دا موده ساقط کړې شوه.نودا نکاح به په جواز باندې نه بدلیږي.او لکه مثلاً دګواهانو نه بغیر ئې نکاح اوکړله.او بیا ئې ګواهان مقرر کړل.نودا نکاح هم چونکه فاسد منعقد شوې وه.ځکه به په جواز باندې نه بدلیږي.اولکه مثلاً یو درهم ئې د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ کړل.بیا ئې یودرهم ساقط کړلو.نودا عقدبه هم په جواز باندې نه بدلیږي.دغه ډول د مجهول نیټې په وجه چې کله عقدبیع فاسد منعقد شوه.نود مجهول نیټې ساقطولو سره به دا عقد په جواز باندې نه بدلیږي.

**وَلَنَا** او زموږ دلیل دادې **أَنَّ الْفَسَادَ لِلْمُنَازَعَةِ** چې د بیع فساد د جګړې په وجه وو **وَقَدِ ارْتَفَعَ قَبْلَ تَقَرُّرِهِ** حالانکه دا د مقرر کیدلو نه وړاندې لرې شو **وَهَذِهِ الْجَهَالَةُ فِي شَرْطٍ زَائِدٍ لَا فِي صُلْبِ الْعَقْدِ** اودا جهالت په یو زیاتی شرط کې وو.په نفس عقد کې نه وو **فَيُمْكِنُ إِسْقَاطُهُ** په دې وجه ددې ساقطول ممکن دی.

**تشریح:-** زموږ دلیل دادې،چه د نیټې مجهول کیدلو په صورت کې بیع ځکه فاسد ده.چه ددې په وجه د بائع او مشتري په مینځ کې د جګړې پیداکیدلو امکان دې.او جګړه به هغه وخت پیدا کیږي.چه کله د نیټې پوره کیدلو وخت راشي.خو هرکله چې دواړو مجهول نیټه ساقط کړله.نو مفسد د بیع ثابتیدلو نه وړاندې لرې شو.او هرکله چې مفسد لرې شو.نو بیع به هم جائز وی.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الدِّرْهَمَ بِالدِّرْهَمَيْنِ** ددې په خلاف که یو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ کړې **ثُمَّ أَسْقَطَا الدِّرْهَمَ الزَّائِدَ** بیا دواړو زیاتی درهم ساقط کړو **لِأَنَّ الْفَسَادَ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ** ځکه چې په نفس عقد کې فساد دې.

**تشریح:-** دلته دا سوال کیدای شي چې هرکله جهالت او فساد په ابتداء د عقد کې ثابت شو.نو ددې ساقطیدل هم

---

[1]) القول الراجح هو قولنا هذا كذا فى فتح القدير(٨٨\٦) وردالمحتار(١٣٤\١٤) والعناية (٨٨\٦) نقلاً عن القول الراجح (٤٧\٢)-



مفید کیدل نه دی پکار.لکه مثلاً چې هرکله ئې یو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ کړلو.بیا دواړو یو درهم ساقط کړلو.نودا زیاتی درهم ساقطول مفید نه دی.نو په دې صورت کې به بیع په جواز باندې نه بدلیږي؟

ځواب ددې ځواب دادې،چه د نیټې مجهول کیدلو په صورت کې جهالت په شرط زائد کې دې.په دې وجه دا ساقطول ممکن او مفید دی.اود ،، بیع الدرهم بالدرهمین ،، په صورت کې فساد صلب عقد یعنی په احدالبدلین کې دې.په دې وجه ددې ساقطول ناممکن دی.

**بِخِلَافِ النِّكَاحِ إِلَى أَجَلٍ** او په خلاف د میعادی نکاح **لِأَنَّهُ مُتْعَةٌ وَهُوَ عَقْدٌ غَيْرُ عَقْدِ النِّكَاحِ** ځکه چې دا متعه ده.اومتعه د عقد نکاح نه علاوه دوهم عقد وی.

**تشریح:-** دا عبارت د امام زفر رحمه الله د قیاس ځواب دې.حاصل د ځواب دادې،چه د مفسد ثابتیدلو نه وړاندې عقد فاسد په جواز سره بدلیدلې شي.خو یو عقد په بل عقد سره نه بدلیږي.اود معین مودې پورې نکاح کول متعه ده.او متعه د نکاح نه علاوه یو عقد دې.نو متعه په نکاح باندې نه بدلیږي.اود مجهول نیټې په صورت کې د مفسد ساقطولو سره مخکې هم دا عقدبیع وو.اود مفسد ساقطولو نه روسته هم دا عقد بیع دې.صرف دومره توپیر دې،چه مخکې عقد فاسد وو.او په مفسد ساقطولو سره جائز شو.نود نیټې مجهول کیدلو صورت په،، نکاح الی اجل،، باندې قیاس کول تیک نه دی.

سوال او پاتې شوداً سوال چې هرکله ئې د ګواهانو نه بغیر نکاح اوکړله.بیا ئې دنکاح نه روسته ګواهان مقرر کړل.نودا نکاح په جواز باندې نه بدلیږي.حالانکه فساد په صلب عقد (په مینځ دعقد) کې نشته؟

ځواب دادې،چه دلته کې فساد دنکاح شرط نه موندلو په وجه دې.اودا فساد قوی دې.اودا داسې ده.لکه چې په صلب د عقد کې وی.او په دې وجه به د دې لرې کول ممکن او مفید نه وی.ددې مثال داسې دې.لکه چې یوکس د اودس نه بغیر لمونځ ادا کړلو.بیا ئې اودس اوکړلو.نو چونکه دا لمونځ د عدم شرط په وجه فاسد شوې دې.ځکه به په جواز باندې نه بدلیږي.

**وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ ثُمَّ تَرَاضَيَا خَرَجَ وِفَاقًا** اود مصنف رحمه الله قول (ثم تراضیا) کلام اتفاقی دې **لِأَنَّ مَنْ لَهُ الْأَجَلُ يَسْتَبِدُّ بِإِسْقَاطِهِ** ځکه چې خانله هغه کس دچا لپاره چې میعاد دې.دا ساقطولې شي **لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّهِ** ځکه چې میعاد خالص دده حق دې.

**حل اللغة:-** ① **وفاق**،اتفاقی، ② **الاستبداد**،مستقل کیدل، ③ **خلاص**،خالص، ④ **اسقاط**،ساقطول

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د قدوری قول ﴿ثم تراضیا...﴾ اتفاقی دې.یعنی د نیټې ساقطولو لپاره د بائع او مشتري دواړو رضامندی شرط نه ده.بلکه د څه لپاره چې نیټه وی.هغه خانله دا ساقطولې شي.ځکه چې نیټه خالص ددې حق دې.نود ساقطولو حق به هم ده ته وی.

### د آزاد اوغلام،یاد ذبیحه اومردار په یو عقد سره د بیع حکم

**قَالَ وَمَنْ جَمَعَ بَيْنَ حُرٍّ وَعَبْدٍ** وکوم کس چې غلام او آزاد یوځائې خرڅ کړل **أَوْ شَاةٍ ذَكِيَّةٍ وَمَيْتَةٍ** یا ذبح کړې شوې وزه او مړزکې وزه ئې یوځائې خرڅه کړله **بَطَلَ الْبَيْعُ فِيهِمَا** نود دواړو بیع باطل ده **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** ([1]) اودا حکم د ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې.

**حل اللغة:-** ① **جمع**، جمع کړو، ② **شاة**،چیلۍ، ③ **میتتة**،مرداره، ④ **ذکیة**،ذبح شوې

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یوکس آزاد او غلام یوځائې خرڅ کړل.یا مذبوحه وزه او مړزکې وزه ئې یوځائې خرڅه کړله.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دواړه صورتونوکې د دواړو بیع باطل ده.که د دواړو ثمن ئې جلا

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(٨٩\٦) والكفاية (٨٩\٦) نقلاً عن القول الراجح (٤٨\٢)-

جلا بیان کړي وي.او که جلا جلا ئې نه وي کړي.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دی.اود امام شافعي رحمه الله هم دا قول دی.اود امام احمد رحمه الله هم یو روایت دادې.

**وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ**: او ابویوسف رحمه الله اوامام محمد رحمه الله فرمائیلی دی **اِنْ سَمّٰى لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ثَمَنًا** که د هر یوثمن ئې بیان کړل **جَازَ فِي الْعَبْدِ وَالشَّاةِ الذَّكِيَّةِ** نود غلام او ذبح شوي وزه بیع جائز ده.

**تشریح**:- او صاحبین رحمهما الله فرمائي.که د دواړو ثمن ئې جلا جلا بیان کړي وي.مثلا داسې ئې وئیلی وي.چه ما آزاد او غلام یا مذبوحه وزه او مړزګي وزه د زرو روپو په عوض واخستل.او په دې کې د هریو ثمن پنځه سوه روپئ دې.نو په دې صورت کې د غلام اود مذبوحه بیع جائز ده.اود آزاد اومردار بیع به باطل وي.او که د دواړو ثمن ئې جلا نه وي بیان کړي.نود دواړو بیع به باطل وي.لکه څنګه چې د امام اعظم رحمه الله مذهب دې.د حضرت امام شافعي رحمه الله هم یوقول دادې.اود امام احمد هم یو روایت دادې.

**وَاِنْ جَمَعَ بَيْنَ عَبْدٍ وَمُدَبَّرٍ** اوکه ده غلام او مدبر جمع کړل **أَوْ بَيْنَ عَبْدِهِ وَعَبْدِ غَيْرِهِ** یا خپل غلام اود بل چا غلام ئې جمع کړل **صَحَّ الْبَيْعُ فِي الْعَبْدِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ** **عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ** نو زمونږ د علمائي ثلاثه رحمهم الله په نیز د غلام بیع دده د برخې (حصې) د ثمن په عوض جائز ده.

**تشریح**:- او که غلام اومدبر ئې یوځائې خرڅ کړلو.یا ئې خپل مملوك غلام اود بل مملوك غلام یوځائې خرڅ کړلو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله اود صاحبینو رحمهما الله په نیز د غلام مملوك ددې د ثمن برخې (حصې) په عوض جائز ده.اود مدبر او غیرمملوك غلام بیع فاسد ده.

**وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللّٰهُ**:او امام زفر رحمه الله فرمائیلی دی **فَسَدَ فِيهِمَا** چې د دواړو بیع فاسد ده.

**تشریح**:- اود امام زفر رحمه الله په نیزد غلام او مدبر،اود خپل غلام اود بل کس غلام د دواړو بیع فاسد ده.

**وَمَتْرُوْكُ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا** او په کومه ذبیحه چې د الله نوم په قصد سره پریخودلې شوې وي **كَالْمَيْتَةِ**،هغه د مردار پشان دې **وَالْمُكَاتَبُ وَأُمُّ الْوَلَدِ كَالْمُدَبَّرِ** او مکاتب او ام ولد د مدبر پشان دې.

**حل اللغة**:- ① **متروك**،پریښودې شوې، ② **التسمية**،دالله نوم وئیل، ③ **منتفية**،نشته، ④ **الاضافة**،نسبت

**تشریح**:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه په کومه ذبیحه باندې د الله تعالی نوم په قصد سره پریښودلو .نودا د مردار پشان دې.نو که مذبوحه وزه دې سره یوځائې خرڅه کړې شوه.نود دواړو بیع به باطل وي.لکه څنګه چې د ذبیحه وزه اود مردارې وزه یوځائې خرڅولو په صورت کې د دواړو بیع باطل وي.

سوال:*چه متروك التسمیه عامداً مختلف فیه ده.د احنافو رحمهم الله په نیز اګرچه ددې خوراك ناجائز دې.خود شوافعو رحمهم الله په نیز جائز ده.نود امامانو د اختلاف په وجه چونکه ددې حرمت خفیف شوې دې.څکه به ددې حکم د مدبر پشان وي.اود غلام اومدبر یوځائې خرڅولو په صورت کې چونکه دغلام بیع جائز وي.نود مذبوحه وزه اود،، متروك التسمية عامداً ،، یوځائې خرڅولو په صورت کې هم د مذبوحه وزه بیع جائز کیدل پکار وو.

ځواب:*دادې چه،، متروك التسمیه عامداً ،، مختلف فیه نه ده.بلکه په ښکاره دلیل یعنی د الله تعالی د قول ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ﴾ مخالفت کاوه په وجه د شوافعو رحمهم الله ښکاره غلطی ده.هم دا وجه ده.که قاضی د متروك التسمیه عامداً د حلالو فیصله ورکړي.نو دده فیصله به نافذ نه وي.نو متروك التسمیه عامدا به د مدبر په مرتبه کې نه وي.بلکه،، متروك التسمیه عامداً ،،اود ذبیحه وزه یوځائې خرڅول به داسې وي.لکه د آزاد او غلام یوځائې خرڅول بهرحال ثابته شوه.چه،، متروك التسمیه عامدا ،، د مردار په حکم کې دې.او مکاتب او ام ولد د مدبر پشان دې.نوکه مکاتب یا ام ولد غلام سره خرڅ کړې شو.نود غلام بیع به دده د ثمن د برخې (حصې) په عوض صحیح وي.

**لَهُ الْاِعْتِبَارُ بِالْفَصْلِ الْأَوَّلِ**،د امام زفر رحمه الله دلیل په رومبۍ مسئله باندې قیاس دې. **إِذْ مَحَلِّيَّةُ الْبَيْعِ مُنْتَفِيَةٌ بِالْإِضَافَةِ إِلَى**



**الْكُلِّ** څکه چې کُل ارخ ته نسبت کاوه سره د بیع محل منتفي دې.

**تشریح**:- د امام زفر رحمه الله دلیل قیاس دې.یعنی امام زفر رحمه الله غلام او مدبر،یا خپل مملوك غلام اود بل کس غلام یو ځائې خرڅول په اولنی صورت یعنی آزاد او غلام یو ځائې خرڅولو باندې قیاس کړې دی.چه لکه څنګه د آزاد اوغلام په بیع کې د دواړو بیع باطل ده.دغه ډول دغلام او مدبر په بیع کې د دواړو بیع فاسد ده.اود دواړو په مینځ کې علت جامعه،آزاد، مردار، مدبراو په عبدغیر کې د محل بیع منتفي کیدل دی.یعنی لکه څنګه چې په لومړنی مسئله کې آزاد او مردار د بیع محل نه دې.دغه ډول په دویمه مسئله کې مدبر او عبدغیر محل بیع نه دی.نو کوم حکم چې د اولې مسئلې دې.هم هغه حکم به د دویمې مسئلې وي.

**وَلَهُمَا أَنَّ الْفَسَادَ بِقَدْرِ الْمُفْسِدِ** اود صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه فساد په قدر د مفسد وي. **فَلَا يَتَعَدَّى إِلَى الْقِنِّ** په دې وجه به دا فساد غلام اړخ ته متعدی نه وی **كَمَنْ جَمَعَ بَيْنَ الْأَجْنَبِيَّةِ وَأُخْتِهِ فِي النِّكَاحِ** لکه( مثلاً) یوکس اجنبیه ښځه او خپله خور په نکاح کې جمع کړل.

**حل اللغة**:- ① **یتعدی**،تجاوز کوی، ② **القن**،غلام، ③ **اخت**،خور، ④ **الاجنبية**،پردئ

**تشریح**:- د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه فساد په اندازه د مفسد وي.یعنی څومره چې د فاسدولو امراومونده شی.فساد به هم په هغه اندازه متحقق کیږي.او مفسد فقط په آزاد او مردار کې دې.څکه چې دا دواړه د مال نه کیدلو په وجه محل بیع نه دی.نو هر کله چې مفسد فقط په آزاد اومردار کې دې.نو فسادبیع به هم دې سره خاص وی.غلام او ذبیحه وزه اړخ ته به نه متعدی کیږي.لکه څنګه چې غلام اومدبر یوځائې خرڅولو په صورت کې د بیع فساد مدبر سره خاص وی.غلام اړخ ته نه متعدی کیږي.اودا داسې ده.لکه مثلا یوکس په عقدنکاح کې اجنبیه ( پردئ) ښځه او خپله خور جمع کړل.نود خور نکاح باطل ده.اود اجنبیه ( پردئ) ښځې صحیح ده.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يُسَمِّ ثَمَنَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا** په خلاف ددې چې کله ئې د هریو ثمن بیان کړي نه وی **لِأَنَّهُ مَجْهُوْلٌ** څکه چې ثمن مجهول دې.

**تشریح**:- خوکه آزاد او غلام ئې یوځائې خرڅ کړل.اود دواړو ثمن ئې جلا جلا بیان نکړلو.نود دواړو بیع به فاسد وی.څکه چې په دې صورت کې دغلام ثمن مجهول دې.اود ثمن مجهول کیدل مفسد د بیع وی.په دې وجه به په دې صورت کې د غلام بیع هم فاسد وی.خو چې کله ئې د دواړو ثمن جلا جلا بیان کړلو.نود ثمن جهالت نه موندلو په وجه به د غلام بیع درست وی.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** په خلاف ددې چې کله ئې د هریو ثمن بیان کړي نه وی **وَهُوَ الْفَرْقُ بَيْنَ الْفَصْلَيْنِ أَنَّ الْحُرَّ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْعَقْدِ أَصْلًا**،اوهم دا په دواړو مسئلوکي توپیر دې چې آزاد د عقد لاندې بالکل نه داخلیږي **لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ** څکه چې آزاد مال نه دې **وَالْبَيْعُ صَفْقَةٌ وَاحِدَةٌ** او بیع صفقة واحده ده **فَكَانَ الْقَبُوْلُ فِي الْحُرِّ شَرْطًا لِلْبَيْعِ فِي الْعَبْدِ** نود غلام بیع قبلولو لپاره د آزاد بیع قبلول شرط شو **وَهٰذَا شَرْطٌ فَاسِدٌ** حالانکه دا شرط فاسد دې.

**تشریح**:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل او ددې دواړو مسئلو ( یعنی د آزاد او غلام بیع،اود غلام اومدبر بیع) په مینځ کې توپیر دادې.چه آزاد سړې او مردار حیوان (ځاروي) د عقدبیع لاندې قطعاً نه داخلیږي.اود عقدبیع لاندې څکه نه داخلیږي.چه دا دواړه مال نه دی.او غیرمال د عقدبیع لاندې نه داخلیږي.اود آزاد اوغلام، یا ذبیحه وزه او مړزګي وزه بیع صفقه واحده ده.ددې دلیل دادې.که مشتری فقط په غلام یا ذبیحه وزه کې بیع قبلول اوغواړي.نوده ته دا اختیار نشته.بلکه دواړه به قبلوی.یابه په دواړوکي بیع ردکوی.نو په یوکې د بیع قبلولو اختیار نه کیدل،د صفقه واحده کیدلو دلیل دې.بهرحال غلام اوآزاد یوځائې خرڅول صفقه واحده ده.او آزاد چونکه د مال نه کیدلو په وجه د بیع لاندې دسره نه داخلیږي.په دې وجه آزاد سړې غیرمبیع شو.او کوم غلام چې ده سره یوځائې خرڅ کړې شوې دې.هغه مبیع شو.نو ګویا بائع مبیع یعنی په غلام کې د بیع قبلولو لپاره په

غیرمبیع یعنی په ازاد کي د بیع قبلولو شرط لګولي دي.اودا شرط شرطِ فاسد دي.او په شرط فاسد سره چونکه بیع فاسدیږي.ځکه به په غلام کي هم بیع فاسد وي.

**السوال**⊛د حضرت امام اعظم‌ رحمه الله په دلیل باندي یو اعتراض دا دي. چي کله د آزاد او غلام دواړو ثمن جلا جلا بیان کړي شو.نودا صفقه واحده نشوه.بلکه صفقه متفرقه شوه.او کله چي صفقه متفرق وي.نو په غلام کي د بیع قبلولو لپاره په آزاد کي د بیع قبلولو شرط لګول لازمی نشو.ځکه چي دابه هغه وخت لازمیدلو.که د دواړو معامله یوه وه.حالانکه دلته کي د دواړو معامله جلا جلا ده.

**الجواب**⊛د رومبی اعتراض ځواب دادي.چه د آزاد اوغلام دواړو ثمن جلا جلا بیانولو باوجود صفقه یوه ده.ځکه چي نه خولفظ د بیع مکرر دي.او نه لفظ د شراء مکرر دي.او کله چي په لفظ د ،،بعت،، او ،،اشتریت،، کي تکرارنشته.نو صفقه متفرق نشوه.

**السوال الثانی**⊛ دوهم اعتراض دادي.چه مطلقاً شرط فاسد نه وي.بلکه شرط فاسد هغه وي.چه په هغې کي بائع یا مشتری یا د معقود علیه نفع وي.او ذکرشوي شرط یعنی په آزاد سړي کي د بیع قبلولو شرط لګولوکي نه په عاقدینوکي د چا نفع شته.اونه د معقود علیه نفع ده.نوکله چي د هیڅ چا نفع نشته.نودا شرط به فاسد هم نه وي.

**الجواب**⊛د دوهم اعتراض ځواب دادي.چه په آزاد سړي کي د بیع قبلولو په شرط کي د بائع نفع ده.په دي طریقه چي مثلاً آزاد او غلام د زر روپو په عوض خرڅ کړي شو.او آزاد مال نه دي.او هرکله چي آزاد سړي مال نه دي.نو دده په مقابله کي به ثمن هم نه وي.نودا داسي شوه.لکه چي بائع اووئیل.چه ما دا غلام د پنځه سوه روپو په عوض په دي شرط خرڅ کړلو.چه مشتری ددي نه علاوه پنځه سوه روپۍ نوري هم راکړي.نو بائع دداسي پنځه سوه روپونفع واخستله.چه د عوض نه خالی دی.اوهم دا ربوا ده.نو په آزاد کي د بیع قبلولو شرط، شرط فاسد دي.او په شرط فاسد سره چونکه بیع فاسدیږي.په دي وجه د غلام بیع به هم فاسد وي.دویمه خبره داده.چه غلام او آزاد په یوه صفقه کي خرڅولوکي بیع بالحصه ابتداءً ناجائز ده.ځکه به په دي صورت کي د غلام او آزاد دواړو بیع ناجائز وي.

| |
|---|
| بِخِلَافِ النِّكَاحِ اوپه خلاف د نکاح لِأَنَّهُ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چي نکاح په شروط فاسده سره نه باطلیږي. |

**تشریح:**- دا عبارت د صاحبینو رحمهما الله د قیاس ځواب دي. حاصل د ځواب دادي.چه بیع په نکاح باندي قیاس کول ټیك نه دی.ځکه چي نکاح په شروط فاسده سره نه فاسدیږي.البته بیع په شروط فاسده سره فاسدیږي.نو فارق سره قیاس څنګه ټیك کیدای شي.

| |
|---|
| وَأَمَّا الْبَيْعُ فِي هٰؤُلَاءِ مَوْقُوْفٌ او پاتي شوه ددوی بیع نودا موقوف ده وَقَدْ دَخَلُوْا تَحْتَ الْعَقْدِ لِقِيَامِ الْمَالِيَّةِ اود مالیت موجود کیدلو په وجه دا د بیع لاندي داخل شو وَلِهٰذَا يَنْفُذُ فِي عَبْدِ الْغَيْرِ بِإِجَازَتِهِ، په دي وجه د دوهم غلام بیع دده په اجازت سره نافذ کیږي وَفِي الْمُكَاتَبِ بِرِضَاهُ فِي الْأَصَحِّ، اود مکاتب بیع دده په رضامندئ سره د اصح قول مطابق نافذ کیږي وَفِي الْمُدَبَّرِ بِقَضَاءِ الْقَاضِي، اود مدبر بیع د قاضی په حکم نافذ کیږي وَكَذَا فِي أُمِّ الْوَلَدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ اوهم دغه دول د شیخینو رحمهما الله په نیز د ام ولد بیع، |

**حل اللغة:**- ① تحت،لاندي، ② ینعقد،منعقد کیږي، ③ قضاء،فیصله، ④ قیام،وجود

**تشریح:**- او پاتي شوه دویمه مسئله نو مدبر، مکاتب، ام ولد،او عبدغیر په عقدبیع کي داخلیږي.ځکه چي ددي مالیت قائم دي.اومالیت ځکه قائم دي.چه د غلام مالیت، په رقیت او تقوم( قیمتی کیدلو) سره متحقق کیږي.او په مدبر،مکاتب، ام ولد،او په عبدغیر کي رقیت هم موجود دي.او متقوم کیدل هم موجود دی.نو هرکله چي دواړه خبري موجود دی.نو ددوی مالیت هم قائم دي.او هرکله چي مالیت قائم دي.نو ددي محل بیع کیدل هم ثابت دی.البته ددوی بیع موقوف ده.یعنی د مدبربیع د قاضی په فیصله باندي موقوف ده.اود مکاتب بیع د مکاتب په رضا پوري موقوف ده.اود ام ولد بیع هم د شیخینو رحمهما الله په نیز د قاضی فیصلي پوري موقوف ده.اود عبدغیر بیع غیر یعنی د مالك په اجازت باندي موقوف ده.هم دا وجه ده.چه د عبدغیربیع د غیریعنی د مالك په اجازت سره





نافذ کیږي.اود مکاتب بیع دده په رضامندئ سره نافذ کیږي.اود مدبر بیع دقاضی په حکم سره نافذ کیږي.اوهم دغه دول د شیخینو رحمهما الله په نیز د ام ولد بیع د قاضی په حکم سره نافذ کیږي.بهرحال د مدبر وغیره بیع موقوف ده.

| |
|---|
| إِلَّا أَنَّ الْمَالِكَ بِاسْتِحْقَاقِهِمْ الْمَبِيْعَ مکر داچه مالك د مبیع مستحق کیدلو په وجه وَهٰؤُلَاءِ بِاسْتِحْقَاقِهِمْ أَنْفُسَهُمْ رَدُّوا الْبَيْعَ فَكَانَ اوهغوی پخپله دخپل ذات مستحق کیدلو په وجه بیع رد کړله.نودا بقاء ارخ ته اشاره ده. هٰذَا إِشَارَةً إِلَى الْبَقَاءِ او مدبر وغیره پخپله |

**تشریح:**- خوچونکه د عبدغیر په صورت کي غیر یعنی مالك د خپل غلام یعنی د مبیع مستحق کیدلو په وجه، او مدبر،مکاتب، او ام ولد پخپله د خپل ذات مستحق کیدلو په وجه بیع ردکړله.په دي وجه په دوی کښي بیع رد شوي ده.اود بیع ردکول ددي خبري دلیل دي.چه په دوی کي بیع موجود وو.او هرکله چي په مدبر وغیره کي بیع متحقق شوه.نو مدبر،مکاتب، ام ولد،او عبدغیرهم مبیع شو.او کوم غلام چي دوی سره یوځاځ خرڅ کړي شو هغه هم مبیع دي.نو په دي صورتونو کي په مبیع کي د بیع قبلولو لپاره په غیر مبیع کي د بیع قبلولوشرط لګول لازم نشو.اوهرکله چي دا شرط لازم نشو.نود غلام بیع به هم فاسد نه وي. ځکه چي مفسد د بیع هم دا شرط وو.او ،،بیع بالحصه ابتداءً،، هم لازم نشو.ځکه چي مدبر وغیره هرکله د بیع لاندي داخل شو.نو په ابتداء عقدکي غلام او مدبروغیره باندي د ثمن تقسیمیدلو نوبت هم نه راځي.بلکه دا نوبت د بیع نه روسته د قبضه په وخت راځي.اودي ته بیع بالحصه بقاءً ونیلي شي.او بیع بالحصه بقاءً جائز ده.ځکه په دي صورتونوکي د غلام بیع ټیك کیږي.په دي وجه په غلام او مدبرکي د هریو ثمن بیانول شرط نه دی.

| |
|---|
| كَمَا إِذَا اشْتَرَى عَبْدَيْنِ لکه ( مثلاً) یوکس دوي (دوه) غلامان واخستل وَهَلَكَ أَحَدُهُمَا قَبْلَ الْقَبْضِ،او د قبضه نه وړاندي په دي دواړوکي یو هلاك شو وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا يَكُوْنُ شَرْطُ الْقَبُوْلِ فِي غَيْرِ الْمَبِيْعِ اودا په غیر مبیع کي د قبلولو شرط نه وي وَلَا بَيْعًا بِالْحِصَّةِ ابْتِدَاءً اونه بیع بالحصه ابتداء وی وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ بَيَانُ ثَمَنِ كُلِّ وَاحِدٍ فِيْهِ په دي وجه په دي کي د هریو ثمن جلا بیانول شرط نه دی. |

**حل اللغة:**- ① اشتری،واغستو، ② هلك،هلاك شو، ③ الابتداء،د اول نه، ④ ثمن،پیسي

**تشریح:**- اودا داسي ده.لکه مثلا یوکس دوي (دوه) غلامان خرڅ کړل.اود مشتری د قبضه کاوه نه وړاندي یو هلاك شو.نود دوهم غلام بیع دده د برخي (حصي) د ثمن په عوض جائز ده.ځکه چي نه خوپه دي کي د غیرمبیع قبلولو شرط لازمیږي.اونه بیع بالحصه ابتداءً لازمیږي.حالانکه هم دا دواړه خبري بیع فاسدونکی دی. حاصل داچه غلام او آزاد د یوځاني خرڅولو په صورت کي چونکه په مبیع کي د بیع قبلولو لپاره په غیرمبیع کي د بیع قبلولو شرط لازمیږي.او بیع بالحصه ابتداءً لازمیږي. په دي وجه په دي صورت کي په غلام او آزاد دواړوکي بیع باطل ده.اود غلام اود مدبر په بیع کي چونکه دا دواړه خرابیاني نه لازمیږي.په دي وجه په دي صورت کي د غلام بیع جائز ده.

## په بیع فاسد کښي د بائع په امر په مبیع باندي قبضه کول

| |
|---|
| فَصْلٌ فِي أَحْكَامِهِ ( دا) فصل ددي ( بیع فاسد) د احکامو ( په بیان کي ) دي وَإِذَا قَبَضَ الْمُشْتَرِي الْمَبِيْعَ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ بِأَمْرِ الْبَائِعِ وکه مشتری په بیع فاسد کي د بائع په حکم سره مبیع باندي قبضه اوکړله وَفِي الْعَقْدِ عِوَضَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَالٌ او په ذکرشوی عقدکي دواړه عوض مال دي مَلَكَ الْمَبِيْعَ نومشتری به ددي مبیع مالك وی وَلَزِمَتْهُ قِيْمَتُهُ و په مشتری به ددي قیمت واجب وی. |

**تشریح:**- احکام،د حکم جمع ده.اوحکم ،،اثر مرتب علی الشئ،، ته وئیلي شي.او اثرمرتب علی الشئ، د شئ نه روسته وی.په دي وجه ئي مخکي شئ یعنی بیع فاسد بیان کړلو.او ددي نه روسته ئي په دي باندي مرتب کیدونکي اثر،یعنی حکم بیان کړي دي.اود بیع حکم ملك دي.نو په دي فصل کي د بیع فاسد مفیدملك کیدلو،اود نه کیدلو بیان دي.

القاعدة: ددې نه وړاندې چې داصل مسئلې بیان اوشي ددې خبرې خیال ساتل پکار دی.چه زموږ په نیز په بیع کې ددوی په نیز هیڅ توپیر نشته.
فاسد او باطل دوې (دوه) جلا جلا شیان دی.اود امام شافعی رحمه الله په نیز دواړه یوشیز دې.د باطل او فاسد په مینځ

فائده القیودات: ① په متن کي د فاسد لفظ ځکه ذکر شوې دې.چه بیع باطل بالکل مفید د ملك نه وی نه د قبضه نه وړاندې،اونه د قبضه نه پس.② اود ،، امربائع ،، نه مراد د بائع اجازت دې.اجازت که صراحةً وی. یعنی که بائع د قبضه کاوه اجازت صراحتاً ورکړې وی.نو مشتری به په قبضه کولوسره د مبیع مالك وی.که د بائع په موجودګۍ کي ئې قبضه کړې وی.او که په غیرموجودګۍ کي ئې قبضه کړې وی.اوکه بایع د خرڅولو اجازت دلالةً ورکړې وی مثلاً چې مشتری د عقد په مجلس کي د بائع په موجودګۍ کي قبضه اوکړله.او بائع خاموش پاتې شو.اوکه د بائع په غیرموجودګۍ کي ئې قبضه اوکړله.نو مشتری به د مبیع مالك نه وی.ځکه چې په دې صورت کي نه صراحة اجازت اوموندې شو.اونه دلالةً اجازت اوموندې شو.③ او د دواړو عوضونو د مال کیدلو قید ئې ځکه لګولې دې.که یوعوض یا دواړه عوضونه غیرمال وی.نو بیع به باطل وی.لکه بیع بالحر او بیع بالدم.او بیع بالمیتة.

صورة المسئلة: که مشتری د بیع فاسد په صورت کي د بائع په اجازت سره په مبیع باندې قبضه اوکړله.او په ذکرشوی عقد کي دواړه عوض مال وی.نومشتری به د مبیع مالك وی.او په ده به ددې قیمت واجب وی.ثمن به واجب نه وی.

| وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللّٰهُ:او امام شافعی رحمه الله فرمایي لَا يَمْلِكُهُ او امام شافعی رحمه الله فرمایي وَإِنْ قَبَضَهُ اګرچه په مبیع باندې قبضه اوکړي. |
|---|

تشریح:- په زیربحث مسئله کي د امام شافعی رحمه الله په نیز په بیع فاسد کي قبضه مفید د ملك نه ده.یعنی که مشتری په بیع فاسد کي د بائع په اجازت سره هم قبضه کړې وی.بیا به هم د امام شافعی رحمه الله په نیز مشتری د مبیع مالك نه وی.امام مالك او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی.

| لِأَنَّهُ مَحْظُورٌ ځکه چې بیع فاسد یو ممنوع شئ دې فَلَا يُنَالُ بِهِ نِعْمَةُ الْمِلْكِ نوددې په ذریعه به د ملك نعمت نه حاصلیږي. |
|---|

حل اللغة:- ① محظور،حرام شوې،② ینال،حاصلیږي،③ یفید،پیدا کوی،④ المشروعیة،جواز

تشریح:- د حضرت امام شافعی رحمه الله دلیل ① دادې.چه بیع فاسد یوه حرامه طریقه ده.او ملك حاصلیدل یو نعمت دې.او فعل حرام د نعمت د حصول سبب نشی کیدلې.ځکه چې د سبب اومسبب په مینځ کي مناسبت ضروری دې.اود فعل حرام اود نعمت ملك په مینځ کي هیڅ مناسبت نشته.بلکه یو ډول تباین دې.نو هرکله چې فعل حرام یعنی بیع فاسد اونعمت د ملك په مینځ کي هیڅ مناسبت نشته.نوددې فعل حرام یعنی د بیع فاسد په ذریعه نعمت دملك هم نشی حاصلیدلې.

| وَلِأَنَّ النَّهْيَ نَسْخٌ لِلْمَشْرُوعِيَّةِ او ځکه چې نهی د مشروع کیدلو نسخه ده لِلتَّضَادِّ ځکه چې دواړه متضاد دی وَلِهٰذَا لَا يُفِيدُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ په دې وجه د قبضه نه وړاندې مفید د ملك نه دې. |
|---|

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه د بیع فاسد رواج په زمانه د جاهلیت کي وو.خو په اسلام کي دبیع فاسد نه منع شوې ده.نود صاحب شریعت صلی الله علیه وسلم د منع کاوه په وجه د بیع فاسد مشروعیت منسوخ شوې دې.اود بیع فاسد مشروعیت ځکه منسوخ شو.چه د نهی ( ممانعت) اومشروعیت په مینځ کي تضاد اومنافات دې.ځکه چې نهی تقاضا کوی،د قبح.او مشروعیت تقاضا کوی د حسن.اود حسن او قبح په مینځ کي منافات دې.نو هرکله چې د قبح او حسن په مینځ کي منافات دې.نوددې په مقتضاء یعنی د نهی او مشروعیت په مینځ کي به هم منافات وی.او هرکله چې په دې دواړو کي منافات دې.نودا دواړه نشی جمع کیدلې.یعنی دا نشی کیدلې.چه یوشیز ممنوع هم وی.او مشروع هم وی.اوهرکله چې دواړه نشی جمع کیدلې.نود نهی وارد کیدلو نه روسته مشروعیت منسوخ شو.نو ثابته شوه.چه د بیع فاسد مشروعیت منسوخ دې.هم دا وجه ده.چه بیع فاسد د قبضه نه وړاندې مفید د ملك نه



وی.یعنی که بیع فاسد مشروع کیدلو.نود قبضه نه وړاندې به هم مفید د ملك وو.لکه څنګه چې بیع صحیح د قبضه نه وړاندې مفید د ملك وی.نود قبضه نه وړاندې د بیع فاسد مفید دملك نه کیدل هم د بیع فاسد د مشروعیت منسوخ کیدلو دلیل دې.او په کوم شئ چې مشروعیت منسوخ شی.هغه چونکه د هیڅ حکم شرعی فائده نه ورکوی.ځکه به بیع فاسد د مشتری لپاره مفید د ملك نه وی.

| وَصَارَ كَمَا إِذَا بَاعَ بِالْمَيْتَةِ اودا داسې شوه.لکه چې بائع د مردار په عوض خرڅ کړې وی. أَوْ بَاعَ الْخَمْرَ بِالدَّرَاهِمِ یائې شراب د دراهمو په عوض خرڅ کړي وی. |
|---|

حل اللغة:- ① صار،اوګرځیدو،② المیتة،مرداره،③ الخمر،شراب،④ الدراهم،جمع د درهم روپۍ

تشریح:- اودا داسې شوه.لکه مثلاً یوکس څه شئ دمردار په عوض خرڅ کړلو.یا ئې شراب د درهم او دنانیرو په عوض خرڅ کړل.اومشتری په مبیع باندې قبضه اوکړله.نو په دې دواړو صورتونوکي داحنافو رحمهم الله په نیز هم مشتری لپاره ملك نه ثابتیږي.نو لکه څنګه چې په دې صورتونوکي د بیع دغیرمشروع کیدلو په وجه بیع مفید د ملك نشی کیدلې.دغه ډول د بیع فاسد په صورت کي هم د عدم مشروعیت په وجه بیع فاسد مفید د ملك نه وی.حاصل داچه ﴿وصار کما اذا باع بالمیتة...﴾ ونیلو سره امام شافعی رحمه الله د بیع فاسد صورتونه په بیع باطل صورتونو باندې قیاس کړی دی.ځکه چې ددوی په نیز د بیع فاسد اود بیع باطل په مینځ کي هیڅ توپیر نشته.

| وَلَنَا أَنَّ رُكْنَ الْبَيْعِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ. او زموږ دلیل دادې.چه د بیع رکن ددې د اهل نه صادر شوې دې مُضَافًا إِلَى مَحَلِّهِ په داسې حال کي چې خپل محل اړخ ته منسوب دې فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِانْعِقَادِهِ نود بیع منعقد کیدلو قائل کیدل واجب شو وَلَا خَفَاءَ فِي الْأَهْلِيَّةِ وَالْمَحَلِّيَّةِ او په اهل کیدلو او محل کیدلو کي هیڅ خفاء نشته. |
|---|

حل اللغة:- ① صدر،واقع شو،② الانعقاد،منعقد کیدل③ ،الخفاء،پټوالې④ ،المحلیة،محل کیدل

تشریح:- زموږ دلیل دادې.چه په بیع فاسد کي یعنی چې کله ﴿مبادلة المال بالمال بالتراضي﴾ وی.خو څه شرط فاسد وی.نو په داسې بیع کي د بیع رکن،یعنی ایجاب اوقبول د داسې سړو نه صادرکیږي.کوم چې ددې اهل دی.یعنی عاقل دی.او بالغ دی.اود بیع محل اړخ ته منسوب دی.یعنی کوم شئ چې مبیع جوړشوې دې.هغه د مال کیدلو په وجه د بیع محل هم دې.نوهرکله چې د بیع رکن یعنی ایجاب اوقبول ددې د اهل نه صادرشو. اود بیع محل اړخ ته منسوب دی.نود بیع په منعقد کیدلو کي څه اشکال دې.یعنی بیع به منعقدشی.او هرکله چې بیع منعقد شوه.نومفید د ملك به وی.ځکه چې هرهغه بیع چې د هغې رکن ددې د اهل نه صادرشی.او محل اړخ ته منسوب شی.هغه مفید د ملك وی.په دې وجه به دا بیع هم مفید د ملك وی. صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د عاقدینو په اهل کیدلو،اومبیع د بیع په محل کیدلو کي هیڅ خفاء نشته. یعنی په بائع اومشتری دواړوکي د اخستلو،او خرڅولو لیاقت موجود دې.او محل دبیع هم دامال دې.

| وَرُكْنُهُ: مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ،اود بیع رکن مبادلة المال بالمال دې وَفِيهِ الْكَلَامُ او زموږ کلام هم ددې پشان بیع فاسد کي دې. |
|---|

تشریح:- او خپل مینځ کي په رضامندۍ سره د مال په بدله کي دمال مبادله کول،هم دا دبیع رکن دې.ددې مبادلې نوم ایجاب او قبول دې.او زموږ کلام هم په داسې بیع فاسد کي دې.په کوم کي چې مبادلة المال بالمال اوموندې شی.یعنی په کوم کي چې دواړه عوض مال وی.که دواړه عوض یا یو عوض مال نه وی.نودا د بیع رکن نه موجود کیدلو په وجه بالاتفاق باطل دې.ددې په مفیدملك نه کیدلوکي د هیڅ چا اختلاف نشته.بلکه بالاجماع غیرمفید دې.حاصل داچه په بیع فاسد کي چونکه رکن د بیع،یعنی مبادلة المال بالمال بالتراضي منسوب شوې دې.یعنی مبیع د مال کیدلو په وجه محل د بیع هم دې.په دې وجه بیع فاسد دخپل ذات په اعتبارسره مشروع شو.او بیع مشروع مفید د ملك وی.ځکه به دا بیع مفید د ملك وی.

**وَالنَّهْيُ يُقَرِّرُ الْمَشْرُوعِيَّةَ عِنْدَنَا** او زموږ په نيز نهي مشروعيت مستحکم کوی **لِاقْتِضَائِهِ التَّصَوُّرَ** ځکه چې نهي د فعل منهي عنه متصور کيدلو تقاضا کوی **فَنَفْسُ الْبَيْعِ مَشْرُوعٌ**، نو نفس بيع مشروع شوه **وَبِهِ تُنَالُ نِعْمَةُ الْمِلْكِ** او هم په دې نفس بيع سره د ملك نعمت حاصليږی **وَإِنَّمَا الْمَحْظُورُ مَا يُجَاوِرُهُ** او ممنوع صرف هغه امر دی. کوم چې ددې سره لګيدلې دې **كَمَا فِي الْبَيْعِ وَقْتَ النِّدَاءِ** لکه د جُمعې د اذان په وخت بيع کول.

**حل اللغة:-** ① **يقرر**،ثابتوی، ② **يجاور**،نزدې \لګيدلې، ③ **تنال**،حاصليږی، ④ **المحظور**،ناجائز

**تشريح:-** دا عبارت د يو سوال ځواب دې هغه دا چې په بيع فاسد باندې نهي وارد شوې ده. او نهي د مشروع کيدلو نه مانع ده. نود نهي واردکيدلو باوجود بيع فاسد څنګه مشروع کيدلې شی.

ځواب ٌددې ځواب دادې. چه زموږ په نيز که نهي په افعال شرعيه باندې وارد وی. نودا د قبيح لغيره تقاضا کوی. يعنی په کوم فعل شرعی چې نهي واردشوې ده. دا دخپل ذات په اعتبارسره مشروع ده. ددې په ذات کې څه قباحت نشته. البته په غير يعنی په وصف، يا ددې متعلق څه شئ کې قباحت دې. او ددې په اعتبارسره دا غيرمشروع دې. لکه د جُمعې د اذان په وخت بيع کول. چه نفس بيع مشروع ده. خود اذان وخت سره په متصل کيدلو سره کراهت پيداشوې دې. نهي عن الشئ چونکه د فعل منهي عنه دمتصور او موجود کيدلو تقاضا کوی. په دې وجه نهي مشروعيت نه منسوخ کوی. بلکه مستحکم کوی. حاصل دا شو. چه د بيع فاسد په صورت کې نفس بيع مشروع ده. اوشرط مفسد يقيناً چې ممنوع دې. او نعمت يعنی د ملك حاصلولو لپاره د نفس بيع مشروعيت کافی دې. نود نفس بيع په وجه د مشتری لپاره ملکيت حاصليږی. او هرکله چې دنفس بيع په وجه ملکيت حاصل شو. نو په فعل حرام سره د ملك نعمت حاصلول لازم نشو. لکه څنګه چې امام شافعیؒ فرمائيلی دی.

**وَإِنَّمَا لَا يَثْبُتُ الْمِلْكُ قَبْلَ الْقَبْضِ** اود قبضه نه وړاندې ملك ځکه نه ثابتيږی **كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَى تَقْرِيرِ الْفَسَادِ الْمُجَاوِرِ** چې د لګيدلی فساد مضبوطولو سبب جوړنشی **إِذْ هُوَ وَاجِبُ الرَّفْعِ بِالْاِسْتِرْدَادِ** ځکه چې د مشتری نه مبيع واپس اخستل، اود فساد لرې کول واجب دی **فَبِالْاِمْتِنَاعِ عَنِ الْمُطَالَبَةِ أَوْلَى** نود مشتری د مبيع سپارلو مطالبې نه منع کيدل او فساد لرې کول به په درجه اولی واجب وی.

**حل اللغة:-** ① **الاسترداد**،واپس کول، ② **يودی**،مفضی شی، ③ **الرفع**،پورته کيدل، ④ **الامتناع**،منع کيدل

**تشريح:-** داعبارت د امام شافعیؒ د قياس «ولهذا لايفيده قبل القبض....الخ» ځواب دې. حاصل د ځواب دادې. چه د امام شافعیؒ په بيع فاسد کې مابعدالقبض په ماقبل القبض باندې قياس کول ټيك نه دی. يعنی دا ونيل ټيك نه دی. چه بيع فاسد لکه څنګه په مبيع باندې د مشتری د قبضه نه وړاندې مفيد د ملك نه ده. دغه ډول د مشتری د قبضه نه روسته هم مفيد د ملك نه وی. ځکه چې د قبضه نه وړاندې که د مشتری لپاره ملك مبيع ثابت شو. نو په مشتری به ثمن سپارل واجب وی. او په بائع به مبيع سپارل واجب وی. ځکه چې دا دواړه خبرې د عقد د احکامو څخې دی. اود مشتری ثمن سپارل، اود بائع مبيع سپارل بيع سره متصل فساد مستحکم کول دی. حالانکه فساد مستحکم کول جائز نه دی. او فساد مستحکم کول ځکه ناجائز دی. که مشتری په مبيع باندې قبضه اوکړله. نود مشتری نه مبيع واپس اخستل، او فساد لرې کول واجب دی. او هرهغه فساد چې د هغې د مشتری نه مبيع واپس کول، اولرې کول واجب وی. د هغې مستحکم کول جائز نه دی. او هرکله چې د مشتری نه مبيع مقبوض واپس اخستل، او فساد لرې کول واجب دی. نود مشتری د مبيع سپارلو مطالبې نه منع کيدل، او فساد لرې کول به په درجه اولی واجب وی.

ځکه چې د مشتری د مبيع سپارلو مطالبې نه منع کيدل، آسان دی. په نسبت ددې چې مشتری په مبيع باندې قبضه اوکړی. او قبضه لرې کړی. بهرحال د بيع فساد لرې کول واجب دی. اود کوم فساد لرې کول چې واجب وی. د هغې مستحکم کول ناجائز دی. او فساد مستحکم کيږی. د مشتری په واسطه ملك ثابتولو سره. په دې وجه موږ اووئيل چه د قبضه کاوه نه وړاندې دمشتری لپاره ملك مبيع نه ثابتيږی.



سوال ٌدلته کې يوسوال دې. چه لکه څنګه په مبيع باندې د قبضه کاوه نه وړاندې د مشتری پ واسطه ملك ثابتول فساد مستحکم کول دی. دغه ډول د قبضه کاوه نه روسته هم د مشتری په واسطه ملك ثابتولو سره فساد مستحکم کيږی. نو په مبيع د قبضه نه روسته مشتری لپاره ملك مبيع ثابتيدل پکار نه وو. چه فساد نه مستحکم کيدلو. لکه څنګه چې په دې يره د قبضه نه وړاندې ملك نه ثابتيږی.

ځواب ٌددې ځواب دادې. چه د قبضه نه روسته د مشتری لپاره ملك ځکه ثابتيږی. چه هرکله مشتری په مبيع باندې قبضه اوکړله. نو مبيع د مشتری په ضمان کې داخل شو. يعنی که مبيع د مشتری په قبضه کې ضائع شو. نو مشتری به ددې ضامن وی. نو هرکله چې مبيع د مشتری په ضمان کې داخل شو. او بائع د دې د عوض ثمن مالك شو. نواوس که ملك د مبيع، د بائع نه مشتری اړخ ته منتقل نشی. نو دواړه بدل يعنی مبيع او ثمن به ديو سړی يعنی د بائع په ملك کې جمع شی. او وړاندې تيرشوی دی. چه د دواړو عوضونو د يوسړی په ملك کې جمع کيدل ناجائز دی. په دې وجه آوونيلی شو. چه د قبضه کاوه نه روسته ملك مبيع د مشتری لپاره ثابتيږی. اود قبضه کاوه نه وړاندې چونکه د دواړو عوضونو ديو سړی په ملك کې جمع کيدل نه لازميږی. په دې وجه د قبضه کاوه نه وړاندې ملك مبيع د مشتری لپاره نه ثابتيږی.

**وَلِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ ضَعُفَ لِمَكَانِ اقْتِرَانِهِ بِالْقَبِيحِ** ځکه چې قبيح سبب سره د لګيدلو په وجه ضعيف شو **فَيُشْتَرَطُ اعْتِضَادُهُ بِالْقَبْضِ فِي إِفَادَةِ الْحُكْمِ** نود ملك مفيد کيدلو کې ددې قبضه سره د مضبوطولو شرط اولګولې شو. **بِمَنْزِلَةِ الْهِبَةِ** لکه څنګه چې په هبه کې دی.

**حل اللغة:-** ① **ضعف**،کمزورې شو، ② **اقتران**،يوځائې کيدل، ③ **الاعتضاد**،مضبوط کيدل، ④ **الافادة**،فائده ورکول

**تشريح:-** اود بيع فاسد ،، قبل القبض،، مفيد د ملك نه کيدلو، او ،، بعدالقبض،، مفيد د ملك کيدلو دوهم دليل دادې. چه د ملك سبب يعنی بيع فاسد په شرط فاسد يعنی د امرقبيح مقترن کيدلو په وجه، د کمزورې کيدلو په وجه په کمزوری شئ باندې ددې حکم نه مرتب کيږی. ترهغه وخته پورې چې ددې سره څه طاقتور شئ ملاؤ نشی. نو دلته کې طاقتور شئ قبضه ده. په دې وجه که په بيع فاسد کې دمشتری په مبيع باندې قبضه اومونده شوه. نو په بيع فاسد به ددې حکم مرتب شی. يعنی د مشتری ملك به ثابت شی. او که قبضه اونه مونده شوه. نو په بيع فاسد به ددې حکم نه مرتب کيږی. يعنی د مشتری ملك به نه ثابتيږی. اودا داسې ده. لکه مثلاً په هبه کې که موهوب له په شئ موهوب باندې قبضه اوکړله. نو هبه به تام وی. اود موهوب له ملك به ثابت وی. او که موهوب له په شئ موهوب باندې قبضه اونکړله. نو هبه به تام نه وی. او موهوب له، به د شئ موهوب له مالك نه وی.

**وَالْمَيْتَةُ لَيْسَتْ بِمَالٍ** او مردار مال نه دې **فَانْعَدَمَ الرُّكْنُ** په دې وجه رکن معدوم شو.

**حل اللغة:-** ① **الميتة**،مرداره، ② **العدم**،غيرموجود، ③ **مثمن**،ثمن چې د څه په مقابله کې وی، ④ **الخمر**،شراب

**تشريح:-** دا عبارت د امام شافعیؒ د دوهم قياس «وصار كما إذا باع بالميتة...» ځواب دې. حاصل د ځواب دادې. چه مردارچونکه مال نه دې. په دې وجه د ،، بيع بالميتة،، په صورت کې احدالعوضين يعنی ثمن مال نه وی. او هرکله چې احدالعوضين مال نه دې. نو رکن د بيع يعنی،، مبادلة المال بالمال،، معدوم شو. او هرکله چې د بيع رکن معدوم شو. نو بيع دسره منعقد هم نشوه. او هرکله چې بيع منعقد نشوه. نودا به مفيد دملك هم نه وی. نه د قبضه نه وړاندې، او نه د قبضه نه پس. ددې په خلاف بيع فاسد ده. چه دا منعقد کيږی. خود شرط فاسد په وجه په دې کې فساد پيداکيږی. نو دومره قدرې توپير سره بيع فاسد په بيع بالميتة ( بيع باطل ) باندې قياس کول ټيك نه دی.

**وَلَوْ كَانَ الْخَمْرُ مُثَمَّنًا فَقَدْ خَرَّجْنَاهُ** اوکه شراب مبيع وی. نو موږ ( د باب البيع الفاسد په پيل کې ) ددې تخريج کړې دې **وَشَيْءٌ آخَرُ وَهُوَ أَنَّ فِي الْخَمْرِ الْوَاجِبُ هُوَ الْقِيمَةُ** او دويمه خبره داچه د شرابو په صورت کې صرف قيمت واجب دې **وَهِيَ تَصْلُحُ ثَمَنًا لَا مُثَمَّنًا** او قيمت ثمن کيدلې شی. مبيع نشی کيدلې.

تشریح:- دا عبارت د امام شافعي رحمه الله د دریم قیاس «باع الخمر بالدرهم.....» ځواب دی. حاصل د ځواب دادی چه
په عقدبیع کي که خمر مبیع وی. لکه څنګه چي امام شافعي رحمه الله فرمائیلی دی. نو ددي تخریج موږ د بیع فاسد باب
په پیل کي کړي دی. چه په عقدبیع کي مبیع چونکه مقصود وی. څکه به په دي صورت کي شراب مقصود اوقابل
اعزاز وی. حالانکه شریعت ددي د توهین حکم کړي دی. په دي وجه به،، بیع الخمر بالدراهم،، باطل وی. او زموږ
کلام په بیع فاسد کي دی. نود بیع فاسد اوباطل په مینځ کي چونکه زموږ په نیز ډیر لوئي توپیر دی. په دي وجه
بیع فاسد په بیع باطل باندي قیاس کول ټیک نه دی. اود بیع الخمر بالدراهم باطل کیدلو دوهم دلیل دادی. که د
شرابو بیع منعقد شی. نو په بائع به د شرابو قیمت واجب وی. څکه چي مسلمان نه شراب سپارلی شی. او نه په دي
باندي قبضه کولي شی. اودا خبره منلي شوي ده. چه قیمت ثمن وی. مبیع نه وی. نو که موږ د،، بیع الخمر بالدراهم
په صورت کي د بیع د انعقاد قائل شو. نو قیمت د خمر به مبیع شی. څکه چي د دراهم او دنانیر په مقابله کي چي
کوم شئ وی. هغه مبیع وی. نود شرابو قیمت کوم چي په بائع باندي واجب شوي دی. مبیع شو. حالانکه شریعت
قیمت ثمن جوړ کړي وو. مبیع نی نه وو جوړ کړی. نو په دي صورت کي مشروع امر متغیر ( بدلول ) کیدل لازمیږی. او
امرمشروع متغیرکول هم ناجائز او باطل دی. څکه بیع الخمربالدراهم باطل شو. او بیع فاسد په بیع باطل باندي د
فارق په وجه قیاس کول چونکه ناجائزنه دی. په دي وجه د بیع فاسد صورتونه په بیع الخمر بالدراهم باندي قیاس
کول جائز نه دی.

## د بائع د امر نه مراد

> ثُمَّ شَرَطَ أَنْ يَكُونَ الْقَبْضُ بِإِذْنِ الْبَائِعِ بيا ( په قدوري کي ) دا شرط لګولی دی. چه قبضه د بائع په اجازت سره وی
> وَهُوَ الظَّاهِرُ او هم دا ظاهرالروایة دی إِلَّا أَنَّهُ يَكْتَفِي بِهِ دَلَالَةً مګر دلالةً په اجازت باندي اکتفاء کولای شی كَمَا إِذَا قَبَضَهُ
> فِي مَجْلِسِ الْعَقْدِ لکه په مجلس د عقد کي ( د بائع په مخکی ) مشتری په مبیع باندي قبضه اوکړله اسْتِحْسَانًا وَهُوَ
> الصَّحِيحُ نو استحساناً ( جائز ده ) او هم دا صحیح ده.

حل اللغة:- ① الاذن، اجازت، ② یکتفی، اکتفا کولي شی، ③ التسلیط، قدرت ورکول ④ الافتراق، جدا کیدل

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی. چه شیخ ابوالحسن قدوري رحمه الله دا شرط ذکرکړلو. چه په مبیع باندي دمشتری
قبضه د بائع په اجازت سره وی. لکه وي فرمائیل. چه «واذا قبض المشتری المبیع في البیع الفاسد بأمر البائع» اود امر بائع
نه مراد د بائع اجازت دی. او اجازت شرط ګرځول، هم دا ظاهرالروایة دی. خو دومره خبره ده. که د بائع اجازت دلالةً
اوموندي شو. بیا هم کافی ده. یعنی د دلالةً اجازت په صورت کي به هم قبضه مفید د ملك وی. او دلالةً د اجازت
صورت دادی. چه مشتری په مجلس د عقد کي د جداکیدلو نه وړاندي د بائع په موجودګئ کي په مبیع باندي
قبضه اوکړله. او بائع مشتری منع نکړلو. نودا استحساناً جائز ده. اوهم دا صحیح روایت دی. او صاحب د ایضاح رحمه الله
فرمائیلی دی. چه په بیع فاسد کي د بائع د اجازت نه بغیر د مشتری په بائع باندي قبضه داسي ده. لکه قبضه نه
کول. یعني لکه څنګه چي د قبضه نه کاوه په صورت کي مشتری د مبیع نه مالك کیږی. دغه ډول د بائع د اجازت
نه بغیر قبضه کاوه سره هم نه مالك کیږی. ( بنایه )

> لِأَنَّ الْبَيْعَ تَسْلِيطٌ مِنْهُ عَلَى الْقَبْضِ، څکه چي بیع کول د بائع د اړخه په قبضه باندي قدرت ورکول دی فَإِذَا قَبَضَهُ بِحَضْرَتِهِ
> قَبْلَ الِافْتِرَاقِ نو هرکله چي د بائع په موجودګئ کي مشتری د جداکیدلو نه وړاندي قبضه اوکړله وَلَمْ يَنْهَهُ او بائع دی
> منع نکړو كَانَ بِحُكْمِ التَّسْلِيطِ السَّابِقِ نودا قبضه به تیرشوی قدرت په نتیجه کي وی.

تشریح:- د روایت صحیحه دلیل دادی. چه د بائع د اړخه د عقدبیع ارتکاب کول، دا مشتری ته په مبیع باندي د
قبضه کاوه قدرت ورکول دی. نو که مشتری د عقدپه مجلس کي د بائع په موجودګئ کي په مبیع باندي قبضه
اوکړله. او بائع دی منع نکړلو. نودا قبضه د بائع د اړخه ورکړي شوی قدرت په نتیجه کي شمارلی کیږی. او کومه
قبضه چي د بائع د اړخه ورکړي کیږی. په هغي سره ملك ثابتیږی. په دي وجه په دي قبضه سره د مشتری ملك



ثابتیږی. او دلالةً د بائع په اجازت باندي اکتفاء کولي شی. د جلا کیدلو نه د وړاندي قید ئي څکه اولګولو. چه د
جلا کیدلو نه روسته قبضه مفید د ملك خودلو لپاره د بائع صراحةً اجازت ضروري دی. د جداکیدلو نه روسته به
دلالةً اجازت کافی نه وی.

> وَكَذَا الْقَبْضُ فِي الْهِبَةِ فِي مَجْلِسِ الْعَقْدِ او هم دغه ډول د هبه په صورت کي په مجلس هبه کي قبضه کول ( د صریح
> اجازت نه بغیر ) يَصِحُّ اسْتِحْسَانًا استحساناً صحیح دی.

تشریح:- هم داحال په هبه کي په شئ موهوب باندي د قبضه کاوه دی. یعنی که په مجلس د هبه کي موهوب له په
شئ موهوب باندي د واهب په موجودګئ کي قبضه اوکړله. او واهب سکوت (خاموشی) اختیارکړلو. او موهوب له
ئي د قبضه کاوه نه منع نکړلو. نود موهوب له دا قبضه به استحساناً جائز وی. اود مجلس هبه قید ئي څکه
اولګولو. چه په باب د هبه کي قبضه رکن دی. اود موهوب له ملك ثابتولو په حق کي د قبول قائم مقام دی. نو لکه
څنګه چي قبول په عقدمجلس باندي موقوف وی. دغه ډول په باب د هبه کي د قبضه قدرت ورکول هم په مجلس د
هبه باندي موقوف دی.

> وَشَرَطَ او ( په قدوري کي ) داسي شرط هم دی أَنْ يَكُونَ فِي الْعَقْدِ عِوَضَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَالٌ چي په عقد کي
> دواړو عوضونوکي هر یو مال وو لِيَتَحَقَّقَ رُكْنُ الْبَيْعِ وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ چي د بیع رکن یعنی د مال مبادله په مال سره
> متحقق وی فَيَخْرُجُ عَلَيْهِ الْبَيْعُ بِالْمَيْتَةِ وَالدَّمِ وَالْحُرِّ وَالرِّيحِ وَالْبَيْعُ مَعَ نَفْيِ الثَّمَنِ نو په دي شرط باندي د مردار او وینې او آزاد اود
> هوا په عوض بیع اود ثمن په نفی کاوه سره د بیع تخریج کولي شی.

حل اللغة:- ① غوضان، تثنیه دعوض، بدله، ② یتحقق، ثابتیږی ③ ، المیتة، مردار ④ ، الدم، وینه ⑤
الحر، آزاد، ⑥ الریح، باد، ⑦ الثمن، پیسي، ⑧ مبادلة، بدلول

تشریح:- ابو الحسین قدوري رحمه الله د دواړو عوضونو د مال کیدلو هم شرط لګولي دی. لکه چي فرمائی. «وفي العقد
عوضان كل واحد منهما مال.....» داشرط ئي څکه لګولي دی. چه د بیع رکن ( حقیقت ) یعنی مبادلة المال بالمال
متحقق شی. نو په کومو صورتونوکي چي مردار، یا وینه ، یا آزاد سړی یا هوا ثمن جوړ کړي وی. یا ئي مبیع
جوړ کړي وی. نود احدالعوضین دمال نه کیدلو په وجه به بیع باطل وی. اوکه د ثمن نفی ئي اوکړله. او بیع ئي
اوکړله. مثلاً وي ونیل. چه دا شئ ما د ثمن نه بغیر واخستلو. نود یو روایت مطابق به دا بیع هم باطل وی. څکه چي
کله ئي د ثمن نفی اوکړله. نود بیع رکن یعنی مبادلة المال بالمال معدوم شو. او هرکله چي رکن د بیع معدوم
شی. نو دسره بیع معدوم او باطل شوه. او په یو روایت کي د ثمن په نفی سره بیع منعقد کیږی.
دلیل دادی. چه د ثمن نفی کول ټیک نه دی. څکه چي بیع هغه ته وائی. کوم چي په دوي (دوه) عوضونو باندي
مشتمل وی. اوکوم چي په دوي (دوه) عوضونو باندي مشتمل نه وی. هغي ته هبه اوصدقه ونیلي شی. نو هرکله چي
د ثمن نفی کول صحیح نه دی. نودا داسي شوه. ګویا مشتری د ثمن نه چوپوالي اختیار کړله. اوکه څوك اخستل
خرڅول اوکړي. او د ثمن ذکر کاوه نه چوپوالي اوکړي. نو بیع فاسد منعقد کیږی. او په قبضه سره ملك د مشتری
ثابتیږی. څکه چي مطلق عقد د معاضه تقاضاکوی. نو هرکله چي مشتری د ثمن ذکر کاوه نه چوپوالي اختیار
کړله. نو دده غرض به د قیمت په عوض اخستل وی. نو ګویا بائع د قیمت په عوض دده په لاس خرڅ کړي دی. (
کفایه)

> وَقَوْلُهُ لَزِمَتْهُ قِيمَتُهُ، فِي ذَوَاتِ الْقِيَمِ، اود مصنف رحمه الله قول (( لزمته قیمته )) په ذوات القیم کي دی فَأَمَّا فِي ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ فَيَلْزَمُهُ
> الْمِثْلُ او پاتي شو په ذوات الامثال کي نو په ده به مثل واجب وی لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ بِنَفْسِهِ بِالْقَبْضِ فَشَابَهُ الْغَصْبَ، څکه چي په
> قبضه سره مثلی شئ بذات خود مضمون وی. نودا د غصب مشابه شو وَهَذَا لِأَنَّ الْمِثْلَ صُورَةً وَمَعْنًى أَعْدَلُ مِنَ الْمِثْلِ
> مَعْنًى اودا څکه چي صورةً او معنیً شئ د مثل معنوی نه زیات برابری ثابتونکي دی.

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه د قدوری رحمه الله قول ﴿لزمته قیمته﴾ یعنی په بیع فاسد کي د مشتری په مبیع باندې د قبضه کاوه نه روسته که مبیع هلاك شو. نو په مشتری به ددې قیمت واجب وی. دا حکم په ذوات القیم کي دې. لکه خاروی عددیات متفاوته (یعنی مختلف قسمه) خوکه مبیع د ذوات الامثال څخه وی. لکه مکیلات موزونات، اود مشتری په قبضه کي هلاك شی. نو په مشتری به ددې مثل واجب وی. ځکه چې د مشتری د قبضه په وجه مبیع مثلی بذات خود مضمون وی. یعنی په مثلی څیزونو کي د ضمان په طور ددې مثل واجب وی. او که د ذوات القیم څخه وی. نو ددې قیمت به واجب وی. او په ذوات الامثال کي مثل ځکه واجبیږی. چه صورة او معنی هلاك شوی شی سره برابری زیاته ده. په نسبت د مثل معنوی یعنی د قیمت. نو په ذوات الامثال کي مثل صوری واجبیږی. البته که د مثل صوری اداکولو نه عاجز وی. نو بیا په دې صورت کي هم قیمت واجبیږی.

**د بیع فاسد د فسخ کولو حق**

**قَالَ** فرمائی **وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُتَعَاقِدَيْنِ فَسْخُهُ رَفْعًا لِلْفَسَادِ** په متعاقدینوکي هریو ته د فساد لرې کاوه لپاره د بیع فاسد فسخ کاوه اختیار دې.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې. چه د فساد لرې کاوه لپاره په متعاقدینوکي هر یوکس ته د بیع فاسد فسخ کاوه اختیار دې. که د قبضه نه وړاندې وی. اوکه د قبضه نه روسته وی.

**وَهٰذَا قَبْلَ الْقَبْضِ ظَاهِرٌ** اودا اختیار د قبضه کاوه نه وړاندې خوبنکاره دې **لِأَنَّهُ لَمْ يُفِدْ حُكْمَهُ** ځکه چې بیع فاسد دحکم بیع فائده نه ده ورکړې **فَيَكُونُ الْفَسْخُ امْتِنَاعًا مِنْهُ** نو فسخ کول به ددې حکم نه منع کیدل وی.

**حل اللغة:-** ① **الامتناع:** منع کیدل، ② **یفد:** فائده ورکوی، ③ **صلب:** مینځ، ④ **القوة:** مضبوط

**تشریح:-** د قبضه نه وړاندې د فسخ کاوه اختیار ځکه دې. چه په مبیع فاسد باندې قبضه مفید دملك نه وی. نود قبضه نه وړاندې فسخ کول، د مالك کیدلو نه منع کول دی. اود مالك کیدلو نه د منع کاوه اختیار بائع اومشتری دواړو ته دې. یعنی بائع د ثمن مالك کیدلو نه منع کیدلې شی. اومشتری د مبیع مالك کیدلو نه منع کیدلې شی. نو هرکله چې دواړو ته د مالك کیدلو نه د منع کیدلو اختیار دې. نو دواړو ته به دفسخ کاوه اختیار هم وی.

**وَكَذَا بَعْدَ الْقَبْضِ إِذَا كَانَ الْفَسَادُ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ** او پاتې شو د قبضه نه روسته هم کله چې فساد په صلب د عقد کي وی. **لِقُوَّتِهِ** ځکه چې فساد قوی دې.

**تشریح:-** اود قبضه نه روسته که فساد د عقد په صلب کي وی یعنی په احدالبدلین کي فساد وی. لکه یو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅول. یا کبرې د شرابو په عوض خرڅول. نو په دې صورت کي فساد ډیر قوی دې. او فساد لرې کول دشریعت حق دې. ځکه د شریعت د حق په وجه عقدفاسد لازم نشو. اود عقد غیرلازم په عاقدینوکي هریوکس د فسخ کاوه قدرت لری. ځکه په دې صورت کي په عاقدینوکي هریوکس ته د فسخ اختیار ورکړې شو.

**المذهبان في المسئلة۞** البته دومره توپیر دې. چه د طرفینو رحمهما الله په نیز چې کوم یوکس هم فسخ کول اوغواړی. د خپل اندیوالان په موجودګی کي به نې فسخ کوی. یعنی د خپل اندیوالان په علم کي به نې راولی. نو فسخ دې کړی.

**دلیلهما۞** بیع فسخ کول او فساد لرې کول بلاشبه د شریعت حق دې. خو په فسخ کولوکي په خپل اندیوالان باندې الزام هم دې. ځکه چې سړې هغه وخت عقد فسخ کولې شی. چه کله دې په دې کي ضرر محسوس کړی. ګویا فسخ کونکی پخپل اندیوالان باندې د ضرر رسولو الزام لګولې دې. او په چا باندې الزام لګولو لپاره ضروری دی. چه هغه ته معلوم هم وی. په چاچه الزام لګولې شی. په دې وجه فسخ کونکې د خپل اندیوالان په موجودګی کي فسخ کولې شی. د اندیوالان په غیرموجودګی کي د فسخ کولواجازت نشته.

**مذهب ابی یوسف رحمه الله۞** اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز دده په موجودګی او غیرموجودګی دواړه حالتونوکي فسخ کولې شی.



**دلیله۞** عقدفاسد فسخ کول، او فساد لرې کول د شریعت حق دې اود شریعت حق ادا کاوه لپاره د چاموجودګی یاغیرموجودګی شرط نه دې. په دې وجه بیع فاسد د خپل اندیوالان په موجودګی کي هم فسخ کولې شی او په غیرموجودګی کي نې هم فسخ کولې شی.

**وَإِنْ كَانَ الْفَسَادُ بِشَرْطٍ زَائِدٍ** اوکه فساد په شرط زائد کي وی **فَلِمَنْ لَهُ الشَّرْطُ ذٰلِكَ** نو دچا لپاره چې شرط دې هغه ته د فسخ کاوه اختیار دې **دُونَ مَنْ عَلَيْهِ** هغه کس ته (اختیار) نه دې په چاچه شرط دې. **لِقُوَّةِ الْعَقْدِ**، ځکه چې عقد قوی دې.

**تشریح:-** اوکه فساد په شرط زائد کي وی. لکه بائع د سامان خرڅولو په وخت دا شرط اولګولو چه مشتری ده ته قرضه ورکړی. یا هدیه پیش کړی. یا نې خرڅ کړلو. اود ثمن ادا کاوه لپاره نې مجهوله نیټه مقرر کړله. نو په مبیع باندې د مشتری د قبضه نه وړاندې په عاقدینوکي هریو کس ته د فسخ کاوه اختیار دې.

**المذهبان في المسئلة۞** خود قبضه نه روسته دحضرت امام محمد رحمه الله په نیز صرف هغه کس ته د فسخ کاوه اختیار دې د کوم لپاره چې دشرط نفع وی. مثلاً د قرضه ورکولو، یا د هدیه ور کاوه په شرط کي د بائع نفع ده. اود مجهول نیټې په شرط کي د مشتری نفع ده. او شرط چې د کوم کس خلاف وی. هغه ته د فسخ کاوه اختیار نه وی. خودا یاد ساتل پکار دی. که،، من له الشرط،، د خپل اختیار لاندې فسخ کول اوغواړی. نود،، من علیه الشرط،، په موجودګی کي به نې فسخ کوی.

**دلیله۞** د حضرت امام محمد رحمه الله دلیل دادې. چه په شرط زائدکي په فساد پیداکیدلو سره فساد قوی نه وی. بلکه عقد قوی وی.

**مذهب الشیخین۞** اود شیخینو رحمهما الله په نیز په عاقدینوکي هریو ته دفسخ کاوه اختیار شته. اګرچه علامه مرغینانی رحمه الله فقط د امام محمد رحمه الله قول ذکر کړې دې. د شیخینو رحمهما الله قول نې نه دې ذکر کړې.

**إِلَّا أَنَّهُ لَمْ تَتَحَقَّقِ الْمُرَاضَاةُ فِي حَقِّ مَنْ لَهُ الشَّرْطُ** مګر داچه د هغه سړی په حق کي رضامندی پوره نشوه. دچا لپاره چې شرط دې.

**تشریح:-** په دې عبارت کي د یو سوال ځواب ورکوی هغه دا چې هرکله عقد قوی دې. نو په عاقدینوکي هیڅ چاته هم اختیار کیدل نه دی پکار؟

ځواب: ددې ځواب دادې. چه دشرط نه بغیر چونکه د،، من له الشرط،، رضامندی نه متحقق کیږی. ځکه ده ته د فسخ کاوه اختیار ورکړې شو. اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې. چه فساد لرې کول چونکه د شریعت حق دې. په دې وجه د عقدلزوم منتفی شو. یعنی عقد غیرلازم شو. او عقد غیرلازم په عاقدینوکي هریوکس فسخ کولې شی. په دې وجه به په دې صورت کي په عاقدینوکي هریو کس ته د بیع فسخ کاوه اختیار وی.

**په بیع فاسد سره اخستې څیز په بل باندې د خرڅولو حکم**

**قَالَ فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِي** فرمائی. که مقبوضه مبیع مشتری خرڅ کړو **نَفَذَ بَيْعُهُ** نو ددې بیع به نافذ وی **لِأَنَّهُ مَلَكَهُ** ځکه چې مشتری ددې مالك شو **فَمَلَكَ التَّصَرُّفَ فِيهِ** نو په دې کي به د تصرف مالك هم وی.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې. که یوکس د شراء فاسد په طورباندې څه شی واخستلو. بیا مشتری د بائع په اجازت سره په مبیع باندې قبضه اوکړله. او مشتری دا دیویل کس په لاس باندې خرڅ کړلو. نود مشتری دا بیع به نافذ وی. ځکه چې مشتری د بائع په اجازت سر په مبیع باندې قبضه کړې ده. او ددې مالك شوې دې. او په مملوکه څیزکي چونکه د هرقسه تصرف اختیار وی. ځکه به مشتری په دې مبیع کي د تصرف مالك وی.

**وَسَقَطَ حَقُّ الْاِسْتِرْدَادِ** اود بائع اول د مبیع واپس اخستلو حق ساقط شو **لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْعَبْدِ بِالثَّانِي** ځکه چې په دویمې بیع سره د بنده حق متعلق شوې دې. **وَنَقْضُ الْأَوَّلِ لِحَقِّ الشَّرْعِ** اود بیع اول ماتول د حق شرع په وجه وو **وَحَقُّ الْعَبْدِ مُقَدَّمٌ لِحَاجَتِهِ** اود بنده حق دده د محتاج کیدلو په وجه مقدم وی.

حل اللغة:- ① الاسترداد،واپس کول، ② الشرع،شريعت، ③ مقدم،وړاندې، ④ الحاجة،ضرورت

تشريح:- پاتې شوه داخبره چې د مشترى د خرڅولو نه روسته بائع اول ته د مبيع واپس اخستلوحق ولې پاتې نشو نو ددې ① رومبې دليل دادې.چه د بيع ثانى سره د مشترى ثانى يعنى د بنده حق متعلق دې.اود فساد په وجه بيع اول فسخ کول،د حق شرع په وجه دې.يعنى د بنده( د مشترى ثانى) حق تقاضا کوى.چه بيع نافذ کړې شى.اود شريعت د حق تقاضا داده.چه بيع فسخ کړې شى.او قاعده ده.چه حق شرع او حق عبد،د جمع کيدلو په صورت کې حق عبد مقدم وى.ځکه چې شارع يعنى الله ﷻ غنى دې.او بنده محتاج دې.او محتاج د رعايت زيات مستحق دې په نسبت د غنى.په دې وجه به د بنده يعنى د مشترى ثانى حق مقدم وى.اود مشترى ثانى حق دا تقاضا کوى.چه بيع فسخ نکړې شى.په دې وجه به په دې صورت کې بيع نه فسخ کيږى.او مبيع به بائع اول اړخ ته نشى واپس کولې.

وَلِأَنَّ الْأَوَّلَ مَشْرُوْعٌ بِأَصْلِهِ اوځکه چې بيع اول دخپل ذات په اعتبار سره مشروع ده دُوْنَ وَصْفِهِ، د وصف په اعتبار سره (مشروع) نه ده وَالثَّانِى مَشْرُوْعٌ بِأَصْلِهِ او بيع ثانى د خپل ذات او وصف دواړو په اعتبار سره مشروع ده وَوَصْفِهِ فَلَا يُعَارِضُهُ مُجَرَّدُ الْوَصْفِ نو صرف وصف به دبيع ثانى معارض نه جوړيږى.

حل اللغة:- ① يعارض،مقابله کوى، ② مجرد،صرف، ③ تسقيط،ساقطول، ④ جهة،طرف

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه بيع اول د خپل ذات په اعتبار سره مشروع ده.خود وصف په اعتبار سره غير مشروع ده.لکه چې وړاندې معلوم شوې دى.او بيع ثانى د خپل ذات او وصف دواړو اعتبار سره مشروع ده.يعنى بيع اول فاسد ده.او بيع ثانى صحيح ده.او فاسد د صحيح معارض نشى کيدلې.ځکه بيع اول د فاسد په وجه بيع ثانى صحيح نشى ختمولې.او هرکله چې بيع ثانى نشى ختميدلې.نود بائع اول حق استرداد ( د مبيع واپسى) به هم ساقط شى.

وَلِأَنَّهُ حَصَلَ بِتَسْلِيْطٍ مِنْ جِهَةِ الْبَائِعِ ځکه چې بيع ثانى د بائع اول د اړخه قدرت ور کاوه سره حاصل شوې ده.

تشريح:- دريم دليل دادې.چه په بيع ثانى باندې د مشترى اول قدرت د بائع اول د اړخه حاصل شوې دې.ځکه چې مشترى د بائع اول په اجازت سره قبضه کړې ده.نود بائع اول مبيع واپس اخستل به ددې بيع ختمول وى. کومه چې پخپله دده د اړخه مکمل شوې ده.اودا باطل ده.په دې وجه به بائع اول ته د مبيع واپس اخستلو اختيار نه وى.

بِخِلَافِ تَصَرُّفِ الْمُشْتَرِىْ فِى الدَّارِ الْمَشْفُوْعَةِ، په خلاف په دارمشفوعه کې د مشترى د تصرف نه لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَقُّ الْعَبْدِ وَيَسْتَوِيَانِ فِى الْمَشْرُوْعِيَّةِ ځکه چې په دې دواړوکې هريو د بنده حق دې وَيَسْتَوِيَانِ فِى الْمَشْرُوْعِيَّةِ او په مشروع کيدلو کې دواړه برابر دى.

حل اللغة:- ① الدار،کور، المشفوعة،چه شفعه پرې شوې وى، ② يستويان،تثنيه د يستوى ،برابريږى

تشريح:- دا عبارت د يو سوال ځواب دې.سوال دادې.که يوکس يو کور واخستلو.چه د هغې بل څوک شفيع دې.هغه شفع هم طلب کړله.خو مشترى د اخستلو نه روسته دا کور د بل په لاس خرڅ کړلو.نو په دې صورت کې د مشترى کړې شوې عقد فسخ کولې شى.او شفيع ته حق ورکولې شى. حالانکه په دې صورت کې هم د مشترى ثانى حق متعلق شوې دې.

ددې ځواب دادې.چه په دې صورت کې دواړه يعنى دمشترى ثانى حق اود شفيع حق ،حق عبد دى.نو په دې کې به هيڅ څوک مقدم نه وى.بلکه د شفيع حق پخپله مقدم وو.هم دا به مقدم وى.يعنى د بيع اولى په منعقد کيدلو سره صفقه شفيع اړخ ته منتقل شوه.اوهرکله چې صفقه شفيع اړخ ته منتقل شوه.نو ددې نه روسته دمشترى واړه تصرفات بلاسند پاتې شو.او بلاسند تصرف ماتولوکې هيڅ حرج نشته.په دې وجه دا تصرف ماتولې شى.او شفيع ته حق ورکولې شى.اوتصرف د شفيع.او تصرف د مشترى چونکه په مشروع کيدلو کې هم برابر دى.په دې وجه هم د مشترى مبيع ته ترجيح نه وى.بلکه دا ماتولې شى.او شفيع ته حق ورکولې شى.



وَمَا حَصَلَ بِتَسْلِيْطٍ مِنَ الشَّفِيْعِ اود شفيع په قدرت ورکولوسره دا تصرف حاصل نشو.

تشريح:- اودا خبره هم نشته.چه د شفيع د اړخه مشترى ته د تصرفاتو قدرت حاصل شو.ځکه چې قدرت خويا په اجازت سره حاصليږى.اويا په ملك ثابتولو سره حاصليږى.او دلته کې دواړه خبرې نشته.ځکه چې شفيع خو نه مشترى ته د تصرف اجازت ورکړې دې.او نه ئې د مشترى داسې څه تصرف منلې دې.چه دده تصرف جائز کړى.نو هرکله چې د شفيع د اړخه مشترى ته د تصرف قدرت حاصل نه دې.نود مشترى تصرف به ماتولې شى.او شفيع ته به حق ورکولې شى.

## د شراب يا خنزير په بدله کښې غلام اخستلو نه روسته تصرف کول

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيْرٍ اوکه يوکس د شرابو يا خنزير په عوض غلام واخستلو. فَقَبَضَهُ بيا ئې په غلام باندې قبضه اوکړله وَأَعْتَقَهُ و آزاد ئې کړو أَوْبَاعَهُ يا ئې خرڅ کړو أَوْوَهَبَهُ يا ئې هبه کړو وَسَلَّمَهُ و وې سپارلو فَهُوَجَائِزٌ نو تصرف جائز دې وَعَلَيْهِ الْقِيْمَةُ و په مشترى به ددې غلام قيمت واجب وى.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس د شراء فاسد په طريقه يوغلام واخستلو.مثلا د شراب ياخنزير په عوض ئې واخستلو.بيا ئې د بائع په اجازت سره په دې باندې قبضه اوکړله.او دا ئې آزاد کړلو.يا ئې خرڅ کړلو.يا ئې هبه کړلو.اوموهوب له ته ئې اوسپارلو.

لِمَا ذَكَرْنَاهُ هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې أَنَّهُ مَلَكَهُ بِالْقَبْضِ چې په قبضه سره مشترى ددې مالك شو فَتَنْفُذُ تَصَرُّفَاتُهُ ځکه به دده تصرفات نافذ وى.

تشريح:- نود مشترى دا تصرفات جائز دى.او په مشترى به ددې مبيع غلام قيمت واجب وى.دمشترى تصرفات ځکه جائز دى.چه هرکله مشترى د بائع په اجازت سره په مبيع باندې قبضه اوکړله.نومشترى د مبيع مالك شو.ځکه چې زموږ په نيز د بائع په اجازت سره دقبضه کاوه په صورت کې بيع فاسد مفيد دملك وى.نو هرکله چې مشترى د مبيع مالك شو.نو په مبيع کې به دده واړه تصرفات نافذ وى.او په مشترى به قيمت ځکه واجب وى.چه د بيع فاسد په صورت کې مبيع مضمون بنفسه وى.اود مضمون بنفسه مطلب دادې.که بيع د ذوات الامثال څخې وى.نود مبيع مثل واجبيږى.اوکه د ذوات القيم څخې وى.نو ددې قيمت واجبيږى.په دې مسئله کې مبيع چونکه غلام دې. او غلام د ذوات القيم څخې دې.په دې وجه به په مشترى باندې د غلام قيمت واجب وى.

وَبِالْإِعْتَاقِ قَدْ هَلَكَ اود آزادولو په وجه غلام هلاك شو فَتَلْزَمُهُ الْقِيْمَةُ ځکه به په مشترى باندې ددې قيمت واجب وى.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د بيع فاسد په صورت کې هرکله مشترى په غلام باندې قبضه اوکړله.اودا ئې آزاد کړلو.نود غلام ماليت پاتې نشو.او هرکله چې د غلام ماليت پاتې نشو .نوګويا غلام هلاك شو.اود هلاك شوى غلام قيمت واجبيږى.په دې وجه په دې صورت کې په مشترى باندې د غلام قيمت واجبيږى.لکه غلام مغصوب که د غاصب سره هلاك شو.نو په غاصب باندې دده قيمت واجبيږى.

وَبِالْبَيْعِ وَالْهِبَةِ انْقَطَعَ الْإِسْتِرْدَادُ او په خرڅولو او هبه کاوه سره د واپس کاوه حق منقطع شو عَلَى مَا مَرَّ لکه څنګه چې تير شوى دى.

حل اللغة:- ① القطع،ختميدل، ② الاسترداد،واپس کول، ③ الفک،خلاصيدل، ④ نظير،مثال

تشريح:- او که مشترى غلام خرڅ کړلو.يا ئې هبه کړلو.او موهوب له ته ئې اوسپارلو.نو په دې دواړو صورتونوکې د بائع اول،،عقدبيع،، فسخ شوې دې.اود مبيع واپس اخستلو اختيار ختم شوې دې.اود هبه په صورت کې د موهوب له حق متعلق شوې دې.او وړاندې تيرشوې دى.چه حق عبد په حق شرع باندې مقدم وى.يعنى د حق عبد(

یعنی د مشتری ثانی) اود موهوب له د حق متعلق کیدلو په وجه بیع فاسد نشی فسخ کولې،او مبیع بائع اول ته نشی واپس کولې.

**وَالْكِتَابَةُ وَالرَّهْنُ نَظِيرُ الْبَيْعِ؛** او کتابت او رهن ایخودل د بیع مثالونه دی **لِأَنَّهُمَا لَازِمَانِ** ځکه چې دا دواړه لازم دی.

**تشریح:-** او کتابت او رهن (ګانړه) ایخودل د بیع مثالونه دی.یعنی که د بیع فاسد په طور باندې نې غلام واخستلو.او د قبضه کاوه نه روسته مشتری دا مکاتب کړلو.یا نې غلام د چا سره رهن (ګانړه) کیخودلو.نو لکه څنګه چې د مشتری غلام اخستلو په صورت کې د بائع اول حق استرداد ساقطیږی.دغه ډول د کتابت او رهن په صورت کې د بائع اول حق استرداد ساقطیږی.ځکه چې کتابت او رهن دواړه د بیع پشان لازم دی.لکه چې د مرتهن په شئ مرهونه باندې د قبضه کاوه نه روسته ،،رهن،، د راهن په حق کې لازمیږی.او کتابت د مولا په حق کې لازمیږی.اود کتابت په صورت کې پخپله د مکاتب حق خپل ذات سره متعلق کیږی.اود رهن په صورت کې د مرتهن حق متعلق کیږی.نود مرتهن اومکاتب حق متعلق کیدلو په وجه بیع فاسد نه فسخ کیږی.او مبیع به بائع اول ارخ ته نشی واپس کولې.

**إِلَّا أَنَّهُ يَعُودُ حَقُّ الْاِسْتِرْدَادِ بِعَجْزِ الْمُكَاتَبِ وَفَكِّ الرَّهْنِ** مګر داچه د مکاتب په عاجز کیدلو سره،اود رهن په خلاصولو سره د واپسئ حق راواپس کیږی **لِزَوَالِ الْمَانِعِ** ځکه چې مانع زائل شو.

**تشریح:-** خو که مکاتب د بدل کتابت نه عاجز شو.یا راهن قرضه اداکړله.اوشئ مرهونه نې پریښولو .نود بائع حق استرداد به واپس راځی.ځکه چې د حق استرداد واپس کیدلونه چې کوم شئ مانع وو.یعنی مبیع سره د حق عبد متعلق کیدل،هغه زائل شو.نو هرکله چې مانع زائل شو.نود بائع بیع فاسد فسخ کولو،اود مبیع واپس اخستلو حق به هم واپس راځی.

**وَهٰذَا بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ؛** اودا حکم د اجارې په خلاف دی.

**تشریح:-** صاحب دهدایه‌ﷺ فرمائی.چه آزادی، بیع ،د هبه مقبوضه په وجه د بائع حق استرداد ساقطیدل،د اجاره په خلاف دی.یعنی که یو کس د بیع فاسد په طریقه څه شئ واخستلو.د قبضه کاوه نه روسته نې داشیز په اجاره باندې ورکړلو.نو ددې اجاره په وجه به د بائع حق استرداد نه ساقطیږی.بلکه بائع ته به د بیع فاسدفسخ کاوه اود مبیع واپس اخستلو اختیار پاته وی.

**لِأَنَّهَا تُفْسَخُ بِالْأَعْذَارِ** ځکه چې د عذر په وجه اجاره فسخ کولای شی **وَرَفْعُ الْفَسَادِ عُذْرٌ** او فساد لرې کول هم یو عذر دی.

**حل اللغة:-** ① **الاعذار**،جمع د عذر ، ② **الرفع**،لرې کیدل، ③ **الامتناع**،منع کیدل، ④ **الرد**،واپس کیدل

**تشریح:-** دلیل دا دی چې اجاره د عذرونو په وجه فسخ کولې شی.او فساد لرې کول قوی عذر دی.نو ددې عذر په وجه به اجاره فسخ کیږی.او هرکله چې اجاره فسخ شوه.نو بائع بیع فاسد فسخ کولې شی.او مبیع واپس اخستلې شی.

**وَلِأَنَّهَا تَنْعَقِدُ شَيْئًا فَشَيْئًا** او ځکه چې اجاره په لږه لږه منعقد کیږی **فَيَكُونُ الرَّدُّ امْتِنَاعًا** نو واپس کول به منع کیدل وی.

**تشریح:-** دوهم دلیل دادی چه اجاره د یوځیز منافع حاصلولو باندې منعقد کیږی.او واړه منافع بالفعل موجود نه وی.بلکه په لږه لږه وقتاً فوقتاً پیدا کیږی.نوهم ددې موافق اجاره هم په لږه لږه منعقد کیږی.نو کوم چې اجاره ختمول اوغواړی.نودا به ددې منفعت په حق کې د اجاره منعقدکیدلو نه منع کیدل وی.کوم منفعت چې ددې نه روسته پیدا کیږی.او په اجاره باندې د ور کاوه نه د منع کیدلو اختیار ده ته هروخت دی.په دې وجه په ذکرشوی صورت کې اجاره ماتول،او مبیع بائع ارخ ته واپس کول واجب دی.

**په بیع فاسد کښې د مبیع واپس اخستل**

**قَالَ وَلَيْسَ لِلْبَائِعِ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ** او په بیع فاسد کې بائع ته دا حق نشته **أَنْ يَأْخُذَ الْمَبِيعَ** چې دې مبیع واپس اخلی **حَتَّى يَرُدَّ الثَّمَنَ** تردې چې ثمن واپس کړی.



**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه د بیع فاسد په صورت کې که بائع د مشتری نه مبیع واپس اخستل اوغواړی نو بائع به رومبې د مشتری ثمن واپس کوی.صاحب د عنایه‌ﷺ د نهایه په حواله سره لیکلی دی.چه دلته کې د ثمن نه مراد قیمت دی.ځکه چې په بیع فاسد کې په مشتری باندې د مبیع قیمت واجبیږی.ثمن نه واجبیږی.نو هرکله چې بائع دمشتری نه قیمت اخستې دې.نوهم قیمت به واپس کول ضروری وی.علامه ابن الهمام په فتح القدیر کې لیکلی دی.چه قیمت هم لازم نه دې.ځکه چې په بیع فاسد کې په مشتری باندې بلاشبه قیمت واجبیږی.خو که بائع او مشتری په ثمن باندې اتفاق اوکړی.نو بائع ثمن اخستلې شی.نومصنف‌ﷺ له داسې ونیل پکاروو.چه په بیع فاسد کې بائع ته د مبیع واپس اخستلو حق نشته.تردې چې بائع هغه شئ واپس کړی.کوم چې ده د مبیع په عوض کې د مشتری نه اخستې دې.که دا شئ د سامان د قبیلې څنې وی.او که د نقود د قبیلې څنې وی.او نقود د ثمن په طور وی.او که د قیمت په طور وی.حاصل داچه اول بائع مشتری ته هغه شئ واپس کړی.کوم چې ده د مشتری نه د مبیع په عوض کې اخستې دې.بیا مبیع واپس واخلی.

**لِأَنَّ الْمَبِيعَ مُقَابَلٌ بِهِ** ځکه چې مبیع هم ددې مقابل دی **فَيَصِيرُ مَحْبُوسًا بِهِ** نو ددې عوض به محبوس (ګیر) پاتې وی **كَالرَّهْنِ** لکه رهن،

**حل اللغة:-** ① **محبوس**،بندشوې، ② **مات**،مړشو، ③ **احق**،زیات حقدار، ④ **الاستیفاء**،پوره اخستل

**تشریح:-** دلیل دا دې چې مبیع هم د هغه شئ مقابل دې.کوم چې مشتری بایع له ورکړې دې.نو هم ددې په عوض به مبیع مشتری سره محبوس ( بند) وی.یعنی ترکومه چې بائع د مبیع عوض واپس نکړی.ترهغه وخته پورې به بائع ته د مبیع واپس اخستلو حق حاصل نه وی.لکه څنګه چې شئ مرهونه د پور په وجه محبوس وی.یعنی ترکومه چې نې راهن قرضه ادا نکړی.ترهغه وخته پورې مرتهن ته د شئ مرهونه منع کولوحق حاصل وی.

**وَإِنْ مَاتَ الْبَائِعُ** او که بائع مړ شو **فَالْمُشْتَرِي أَحَقُّ بِهِ** نو مشتری ددې مبیع زیات حقدار دی **حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ** تردې چې خپل پوره ثمن حاصل کړی.

**تشریح:-** او که بائع وفات شو.نو مشتری د مبیع زیات حقدار دې.تردې چې مشتری خپل ورکړې شوې ثمن پوره پوره وصول کړی.

**لِأَنَّهُ يُقَدَّمُ عَلَيْهِ فِي حَيَاتِهِ** ځکه چې د بائع په ژوند کې بائع باندې دې مقدم وو **فَكَذَا عَلَى وَرَثَتِهِ وَغُرَمَائِهِ بَعْدَ وَفَاتِهِ كَالرَّاهِنِ** نوهم دغه ډول د بائع د مرګ نه روسته به هم دده په وارثانو او قرضخواه (د پور په مطالبه کونکو) باندې مقدم وی.پشان د راهن( که دې مړشوې وی)

**حل اللغة:-** ① **یقدم**،وړاندې کیږی، ② **حیاة**،ژوند ، ③ **الغرماء**،جمع دغریم،قرضخواه، ④ **وفات**،مرګ

**تشریح:-** دلیل دا دې چې هرکله مشتری د بائع په ژوند کې د مبیع زیات حقدار وو.نو دده د مرګ نه روسته به دده د وارثانو،او پور غوښتونکو په مقابله کې مشتری زیات حقدار وی.لکه څنګه چې که راهن مړشو.اود راهن وارثان او پور غوښتونکی ژوندی دی.نود مال مرهونه زیات حقدار مرتهن وی.یعنی اول به مرتهن د شئ مرهونه نه خپله قرضه وصول کوی.ددې نه روسته که څه پاته شو.نو هغه به پور غوښتونکو او وارثانو ته ورکولې شی.

**ثُمَّ إِنْ كَانَتْ دَرَاهِمُ الثَّمَنِ قَائِمَةً** بیا که د ثمن درهم بعینه قائم وی. **يَأْخُذُهَا بِعَيْنِهَا** نوهم دا دې واخلی.

**حل اللغة:-** ① **الدراهم**،جمع د درهم، روپئ، ② **الاخذ**،اخستل، ③ **تعین**،معین کیږی، ④ **مستهلکة**،هلاك شوې

**تشریح:-** علامه مرغینانی‌ﷺ فرمائی.چه مشتری د بیع په عوض کوم درهم او دنانیر بائع ته ورکړی وو.که دا بائع سره موجود وی.نو مشتری به بعینه هم دا اخلی.

لِأَنَّهَا تَتَعَيَّنُ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ، ځکه چې دراهم په بيع فاسد کې متعين کيږي وَهُوَ الْأَصَحُّ، اوهم دا قول اصح دې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْغَصْبِ، ځکه چې بيع فاسد په منزله د غصب ده. وَإِنْ كَانَتْ مُسْتَهْلَكَةً او که د ثمن دراهم هلاك کړې شو أَخَذَ مِثْلَهَا نو ددې مثل دې واخلي. لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- ځکه چې دراهم او دنانير اګرچه په عقود صحيحه کې په متعين کاوه سره نه متعين کيږي. خو په عقود فاسده کې په متعين کاوه سره متعين کيږي. او په عقود فاسده کې په متعين کاوه سره ځکه متعين کيږي. چه بيع فاسد د غصب په مرتبه کې ده. يعنې په مبيع باندې د مشتري قبضه د غصب په طور ده. او په ثمن باندې د بائع قبضه د غصب په طور ده. نو لکه څنګه چې د غصب په صورت کې په غاصب باندې بعينه د شئ مغصوبه واپس کول واجب دی. او د شئ مغصوب هلاکيدلو په صورت کې ددې مثل واجب وی. او که هلاك شوی وی. نو ددې مثل به واپس کوی.

## د بيع فاسد په کور باندې د عمارت جوړولو مسئله

قَالَ وَمَنْ بَاعَ دَارًا بَيْعًا فَاسِدًا فرماني. او که يو کس د بيع فاسد په طور يو (احاطه شوې) کور خرڅ کړو فَبَنَاهَا الْمُشْتَرِي بيا مشتري په دې باندې عمارت جوړ کړو فَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په مشتري باندې ددې احاطې قيمت واجب وی وَرَوَاهُ يَعْقُوبُ عَنْهُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ دا امام ابوحنيفه رحمه الله نه يعقوب په جامع صغير کې روايت کړې دې. ثُمَّ شَكَّ بَعْدَ ذٰلِكَ فِي الرِّوَايَةِ بيا ددې نه روسته په روايت کولو کې شك کړې دې.

حل اللغة:- ① دار، کور، البناء، عمارت جوړيدل، ② شك، شك کړې، ③ المشتري، اغوستونکې

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. که يو کس په بيع فاسد سره يو احاطه شوې کور واخستلو. او په دې باندې ئې نور عمارت تعمير کړلو. يا ئې د بيع فاسد په طريقه مځکه واخستله. په دې کې ئې ونې اولګولې. نو د. حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د بائع حق استرداد (بيع فسخ کول او مبيع واپس اخستل) نه ساقطيږي. مشتري باندې عمارت اورانول او کور واپس کول، او ونې اوبنکل او مځکه واپس کول واجب دی. علامه مرغيناني رحمه الله فرماني. چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله قول په جامع صغير کې امام محمد رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله نه، او امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دې. خو ددې نه روسته امام ابويوسف رحمه الله په خپل روايت کې شك کړې وو. چه دا ما دحضرت امام صاحب رحمه الله نه اوريدلې وو. او که نه. خود امام صاحب رحمه الله مذهب هم دادې. چه بائع مبيع واپس نشي اخستلې. بلکه په مشتري باندې ددې قيمت واجب دې. يعنې د امام ابويوسف رحمه الله په روايت کې بلاشبه شك دې. خود امام صاحب رحمه الله په مذهب کې شك نشته.

وَقَالَا: يَنْقُضُ الْبِنَاءَ او صاحبين رحمهما الله فرمانيلې دی. چه عمارت به وړانولې شی وَتُرَدُّ الدَّارُ[1] او احاطه به بائع ته واپس کولای شی وَالْغَرْسُ عَلَى هٰذَا الْاِخْتِلَافِ او په ونو لګولو کې هم دا اختلاف دې.

حل اللغة:- ① الانقضاء، وړانيدل، ② الغرس، ونه نال کول، ③ اضعف، زيات کمزورې، ④ التاخير، روستوالې

تشريح:- په زير بحث مسئله کې صاحبين رحمهما الله فرماني. چه عمارت به وړانولې شی. او احاطه به بائع ته واپس کولې شی. او په ونو لګولو کې هم دا اختلاف دې يعنې که يو کس بيع فاسده اوکړله او د هغې نه روسته ئې په باغ کې ونې خرڅې کړې نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا بيع صحيح ده او صاحبين رحمهما الله فرمايي چې ونې به واپس کولې شی.

لَهُمَا أَنَّ حَقَّ الشَّفِيعِ أَضْعَفُ مِنْ حَقِّ الْبَائِعِ د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه د شفيع حق په نسبت د بائع د حق زيات

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۱۰۳/۶) والدر المختار(۱۴۶/۱۴) نقلاً عن القول الراجح(۴۹/۱۲)-



کمزور دي حَتّٰى يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الْقَضَاءِ تر دې چې شفيع ته د خپل حق اخستلو کې د قاضي دحکم زيات اړتيا وي وَيَبْطُلُ بِالتَّأْخِيرِ او په حق غوښتلو کې په تاخير کاوه سره حق باطليږي.

تشريح:- د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. که يو کس کور واخستلو. په دې کې ئې عمارت جوړ کړلو. يا ئې مځکه واخستله او په دې کې ئې ونې اولګولې. او په دې کور يا مځکه کې چاته حق شفعه رسيږي. نو د مشتري په دې نوې تعمير او په ونو لګولو سره د شفيع حق نه ساقطيږي. بلکه په مشتري باندې عمارت اورانول، او ونې اوبنکل، او د شفيع حق يعنې کور يا مځکه واپس کول واجب دي. حالانکه د شفيع حق د بائع د حق استرداد نه کمزورې دې. ځکه چې شفيع ته د خپل حق په اخستلو کې د قاضي حکم، يا د مشتري رضامندۍ ته اړتيا وي. او که شفيع په خپل حق غوښتلو کې تاخير اوکړي. نو دده حق باطليږي. او که شفيع مړشي. نو حق شفعه دده وارثانو لپاره نه ثابتيږي.

بِخِلَافِ حَقِّ الْبَائِعِ، ثُمَّ أَضْعَفُ الْحَقَّيْنِ په خلاف د بائع د حق، بيا په عمارت جوړولو سره کمزورې حق نه باطليږي لَا يَبْطُلُ بِالْبِنَاءِ فَأَقْوَاهُمَا أَوْلَى نو قوي حق به په په درجه اولي نه باطليږي.

حل اللغة:- ① البناء، آبادي، ② الغرس، ونه نال کول، ③ الدوام، هميشوالې، ④ تسقيط، ساقط کول

تشريح:- ددې په خلاف په بيع فاسد کې د بائع حق استرداد خونه د قاضي په حکم باندې موقوف وي. او نه د مشتري په رضا باندې موقوف وي. او د مبيع د واپس کاوه مطالبه کاوه کې تاخير کاوه سره هم د بائع حق نه باطليږي. او که بائع مړشي. نو دده داحق د وارثانو لپاره ثابتيږي. نو د شفيع حق کوم چې کمزورې دې چه هرکله د مشتري په عمارت جوړولو او په ونولګولو سره دا نه باطليږي. بلکه په مشتري باندې عمارت اورانول، او ونې اوبنکل، او مبيع شفيع ته واپس کول واجبيږي. نو د بائع حق استرداد کوم چې قوي دې. د عمارت او ونو په وجه په درجه اولي نه باطليږي. بلکه په دې صورت کې په مشتري باندې په درجه اولي واجب دی. چې دې عمارت اوران کړي. ونې اوباسي. او مبيع بائع ته واپس کړي.

وَلَهُ أَنَّ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ مِمَّا اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه عمارت او ونه داسې شئ دې. يُقْصَدُ بِهِ الدَّوَامُ چې ددې هميشه ساتل مقصود دی وَقَدْ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ جِهَةِ الْبَائِعِ او دا د بائع د اړخه قدرت ورکولو سره موجود شوی دی فَيَنْقَطِعُ حَقُّ الِاسْتِرْدَادِ په دې وجه د بائع حق واپس منقطع کيږي كَالْبَيْعِ لکه د مشتري په مبيع خرڅولو سره (د بائع حق واپس منقطع کيږي).

تشريح:- د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه په عمارت جوړولو، او ونو لګولو سره د مشتري مقصود دا پاته ساتل وي. ددې اورانول، او اوبنکل مقصود نه وي. او په ونو لګولو او په عمارت جوړولو باندې مشتري ته قدرت هم بائع ورکړې دې. په دې طريقه چې مشتري د بائع په اجازت سره په مبيع باندې قبضه کړې ده. او د مشتري دغه تصرف کوم چې د بائع په قدرت ور کاوه سره حاصل شوې وي. د هغې په وجه د بائع مبيع واپس اخستلو حق ساقطيږي. لکه مثلاً که مشتري مبيع د بل چا په لاس خرڅ کړې وي. يا ئې هبه کړې وي. او سپارلې ئې وي. نو د بائع حق استرداد ساقطيږي. دغه ډول د مشتري په دارمبيعه کې عمارت جوړول، او په ارض مبيعه کې په ونو لګولو سره د بائع حق استرداد ساقطيږي.

بِخِلَافِ حَقِّ الشَّفِيعِ په خلاف د شفيع د حق لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ مِنْهُ التَّسْلِيطُ ځکه چې د شفيع د اړخه قدرت ورکول نه دې موجود شوي وَلِهٰذَا لَا يَبْطُلُ بِهِبَةِ الْمُشْتَرِي وَبَيْعِهِ په دې وجه د مشتري په مبيع خرڅولو، او هبه کاوه سره د شفيع حق نه باطليږي فَكَذَا بِبِنَائِهِ نو هم دغه ډول د مشتري عمارت جوړولو سره هم نه ساقطيږي.

تشريح:- البته د مشتري په عمارت جوړولو، او په ونو لګولو سره د شفيع حق نه باطليږي. اګرچه د شفيع حق د بائع د حق نه کمزورې دې. وجه داده. چه د شفيع د اړخه مشتري ته د تصرف هيڅ حق حاصل نه دې. نو د مشتري په تصرف کولو سره د شفيع حق شفعه هم نه باطليږي. او هرکله چې د شفيع حق باطل نشو. نو عمارت به اورانولې شي، او ونې به اوبنکلې شي. او شفيع ته به خپل حق ورکولې شي. د مشتري په تصرف کاوه سره چونکه د شفيع حق نه

باطليږي.په دې وجه كه مشتري ارض مبيعه هبه كړله.او موهوب له ته ئې اوسپارله.يا ئې دا خرڅه كړله.نود شفيع حق نه باطليږي.بلكه د هبه په صورت كې به شفيع ارض موهوبه د موهوب له نه اخلي.اود بيع په صورت كې به دا د مشتري ثاني نه اخلي.نو لكه څنګه چې د هبه اود بيع په وجه د شفيع حق نه باطليږي.دغه ډول په عمارت جوړولو او ونو لګولو سره هم د شفيع حق نه باطليږي.

**وَشَكَّ يَعْقُوبُ فِي حِفْظِ الرِّوَايَةِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** او يعقوب د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه د خپل روايت په محفوظ ساتلو كې شك كړي دى.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله د تاكيد په طور دوباره فرمائيلي دي.چه حضرت امام ابويوسف رحمه الله د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه پخپل روايت كولو كې شك كړي دې.يعنى په دې كې شبه ده.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله دا قول(چه د مشتري په عمارت جوړولو،او ونو لګولو سره د بائع حق استرداد ساقطيږي.او په مشتري باندې قيمت واجبيږي) ما اوريدلې دې.اوكه نه دې .اود امام محمد رحمه الله نه ئې دا روايت بيان كړې دې.او كه نه دې.دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په مذهب كې هيڅ شك نشته. ددوى مذهب باليقين هم دادې.چه د بيع فاسد په طريقه كه مځكه واخستلې شوه.او په دې كې مشتري عمارت جوړ كړلو.يا ئې ونې اولګولې.نو ددې په وجه د بائع حق استرداد ساقطيږي.او په مشتري به د ارض مبيعه قيمت واجب وي.

**وَقَدْ نَصَّ مُحَمَّدٌ عَلَى الاِخْتِلاَفِ فِي كِتَابِ الشُّفْعَةِ** او امام محمد رحمه الله په،،كتاب الشفعة،،كې د اختلاف تصريح كړې ده **فَإِنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ مَبْنِيٌّ عَلَى انْقِطَاعِ حَقِّ الْبَائِعِ بِالْبِنَاءِ** ځكه چې حق شفعه د عمارت جوړولو په وجه د بائع حق منقطع كاوه باندې مبنى دې **وَثُبُوتُهُ عَلَى الاِخْتِلاَفِ** اود حق شفعه ثبوت مختلف فيه دې.

**حل اللغة:-** ① **نص**،تصريح كړې، ② **مبنى**،مبنى ده، ③ **الانقطاع**،ختميدل، ④ **ثبوت**،ثابتيدل

**تشريح:-** په دې خبره (چې دا د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې) دليل دادې.چه حضرت امام محمد رحمه الله په كتاب الشفعه كې د حضرت امام صاحب رحمه الله اود صاحبينو رحمهما الله په مينځ كې په داسې مسئله كې د اختلاف تصريح كړې ده. كومه چې په ذكرشوې مسئله كې په اختلاف باندې مبنى ده.

په كتاب الشفعه كې ذكردى.كه يوكس د بيع فاسد په طريقه د زمكې څه برخه واخستله.او په دې كې ئې نوې تعمير اوكړلو.يا ئې ونې اولګولې.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د زمكې په دې برخه كې شفيع ته حق شفعه حاصل دې.يعنى شفيع ته دا حق دې.چه دې قاضى ارخ ته مراجعت اوكړي.اودا ارض مشفوعه واخلي.او په مشتري باندې واجب دى.چه دې عمارت اوران كړي.او ونې اوباسي.اودا مځكه شفيع ته حواله كړي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په دې صورت كې شفيع ته د شفعه هيڅ حق نه حاصليږي.

د امام صاحب رحمه الله او صاحبينو رحمهما الله په مينځ كې دا اختلاف په دې مبنى دې.چه د مشتري په عمارت جوړولو او په ونو لګولو سره د بائع حق استرداد( د مبيع واپس اخستلو حق) ساقطيږي.او كه نه ساقطيږي.نود امام صاحب رحمه الله په نيزچونكه د شفيع لپاره حق شفعه ثابت ده.په دې وجه ددوى په نيز د بائع حق استرداد ساقطيږي.ځكه چې دا دواړه خبرې نه جمع كيږي.چه د شفيع لپاره حق شفعه هم ثابت وي.اود بائع حق استرداد هم پاتـه وي.ځكه چې حق شفعه په دې صورت كې ثابتيږي.چه د بائع وجود وي.او بيع په هغه صورت كې موجود وي.چه كله د بائع حق استرداد ساقط شي.نو په ذكرشوې مسئله كې د شفيع لپاره حق شفعه ثابتول ددې خبرې دليل دې.چه د بائع حق استرداد ساقط شي.او هركله چې د بائع حق استرداد ساقط شو.نو بائع به د مشتري نه د مبيع قيمت اخلي.ثمن به نه اخلي.ځكه چې د بيع فاسد په صورت كې په مشتري باندې د مبيع قيمت واجبيږي.ثمن نه واجبيږي.بهرحال ددې تفصيل نه معلومه شوه.چه د امام صاحب رحمه الله مذهب هم دادې.چه دمشتري په عمارت جوړولو،او په ونو لګولو سره د بائع مبيع واپس اخستلو حق ساقطيږي.او په مشتري به د مبيع قيمت واجب وي.

اود صاحبينو رحمهما الله په نيز چونكه د شفيع لپاره په ذكرشوى صورت كې حق شفعه نه حاصليږي.په دې وجه معلومه



شوه.چه ددوى په نيزد بائع حق استرداد نه ساقطيږي.بلكه په مشتري باندې واجب دى.چه دې خپل تعمير شوې عمارت اوران كړي.او ونې اوباسى.او مبيع بائع ته اوسپارى.

**په بيع فاسد سره د وينځې اخستلو.او قبضه كولو نه روسته خرڅولو سره نفع اخستل**

**قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً بَيْعًا فَاسِدًا** فرمائى. اوكه يوكس د بيع فاسد په طور وينځه واخستله **وَتَقَابَضَا** و بائع او مشتري قبضه هم اوكړله **فَبَاعَهَا** بيا مشتري دا وينځه خرڅه كړله **وَرَبِحَ فِيهَا** و په دې كې ئې نفع حاصله كړله **تَصَدَّقَ بِالرِّبْحِ** نو نفع دې صدقه كړي **وَيَطِيبُ لِلْبَائِعِ مَا رَبِحَ فِي الثَّمَنِ** و بائع اول چې په ثمن كې كومه نفع حاصل كړې ده.هغه دده لپاره حلال ده.

**حل اللغة:-** ① **الجارية**،وينځه، ② **التقابض**،يوبل نه اخستل، ③ **التصدق**،صدقه كول، ④ **الربح**،ګټه

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.كه يوكس د بيع فاسد په طور يوه وينځه واخستله.او دواړو خپلو كې قبضه اوكړله.يعنى بائع په ثمن باندې او مشتري په وينځه باندې قبضه اوكړله.بيا مشتري وينځه .خرڅه كړله.په دې كې ئې نفع حاصل كړله.نو په مشتري باندې د نفع په مقدار صدقه كول واجب دى.خو كه بائع په ثمن سره څه شئ اخستلو.په دې كې ئې نفع حاصل كړله.نود بائع لپاره دا نفع جائز ده.ددې صدقه كول واجب نه دى.

**وَالْفَرْقُ أَنَّ الْجَارِيَةَ مِمَّا يَتَعَيَّنُ** چې وينځه متعين شئ دې **فَيَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِهَا** ځكه به عقدبيع ددې د ذات سره متعلق وى **فَيَتَمَكَّنُ الْخُبْثُ فِي الرِّبْحِ** نو په نفع كې به د حرمت نجاست متمكن وى.

**حل اللغة:-** ① **يتعين**،معين كيږي، ② **يتعلق**،متعلق كيږي، ③ **يتمكن**،ثابتيږي، ④ **الخبث**،حراموالي

**تشريح:-** د مالونو يو ډول هغه دې چې په عقودوكې متعين كولوسره متعين كيږي.لكه د درهم او دنانير نه علاوه شيان وينځه، كپړه وغيره.نو كه متعينه وينځه ئې خرڅه كړله.نود بائع لپاره ددې په ځائې بله وينځه سپارل جائز نه دى.

اوس وينځه داسې شئ دې.چه په متعين كاوه سره متعين كيږي.او هركله چې وينځه متعين ده.نوعقدثانى به ددې د ذات سره متعلق وى.حالانكه دا وينځه د بيع فاسد په وجه د مشتري ملك فاسد وو.نود مشتري دا وينځه خرڅول،او نفع حاصلول د ملك فاسد نه نفع حاصلول دى.او كومه نفع چې د ملك فاسد نه حاصليږي.په هغې كې خبث يعنى د حرام كيدلو نجاست موثر او مولښتى كيږي.او په كوم شئ كې چې خبث موجود شي.د هغې شئ صدقه كول واجبيږي.پخپل استعمال كې راوستل حلال نه وى.په دې وجه مشتري چې كومه وينځه خرڅه كړې ده.او كومه نفع ئې چې حاصله كړې ده.په ده د هغې صدقه كول واجب دى.

**وَالدَّرَاهِمُ وَالدَّنَانِيرُ لاَ يَتَعَيَّنَانِ عَلَى الْعُقُودِ** او دراهم او دنانير (چونكه) په عقود كې نه متعين كيږي **فَلَمْ يَتَعَلَّقِ الْعَقْدُ الثَّانِي بِعَيْنِهَا** ځكه به عقدثانى ددې د ذات سره نه متعلق كيږي **فَلَمْ يَتَمَكَّنِ الْخُبْثُ** او خبث به متمكن نه وى **فَلاَ يَجِبُ التَّصَدُّقُ** نو صدقه كول به هم واجب نه وى.

**تشريح:-** د مالونو دوهم هغه دې. چې په عقودوكې متعين كاوه سره نه متعين كيږي.لكه دراهم او دنانير.نوكه يوكس يوڅيز د متعين دارهمو په عوض واخستلو.بيا مشتري ددې دارهمو نه علاوه نور دراهم وركول اوغوښتل.نود بائع لپاره د انكار ګنجائش نشته.بلكه بائع به هم ددې دراهمو په اخستلو باندې مجبوركولې شى.كوم دراهم چې مشتري بائع ته وركول غواړي.دا مذهب په احنافوكې د آئمه ثلاثه امام ابوحنيفه،امام ابويوسف،اود امام محمد رحمهم الله دې.

او دراهم او دنانير زمونږ په نيز چونكه په متعين كولوسره نه متعين كيږي.په دې وجه عقدثانى ددې دراهمو د ذات سره نه متعلق كيږي.كوم دراهم چې بائع د وينځې په عوض كې حاصل كړي وو.نودا اخستل به ددې دراهمو د ذات سره نه متعلق كيږي.ځكه چې دراهم او دنانير د متعين كولوباوجود نه متعين كيږي.او هركله چې داعقد يعنى د بائع څه شئ اخستل،ددې دراهمو د ذات سره متعلق نشو.كوم چې ده د بائع په عوض حاصل كړي وو.نو

ددې عقد په وجه چې کومه نفع حاصل شوې وي.په هغې کې به خبث هم نه پیدا کیږي.او هرکله چې په دې نفع کې
خبث پیدانشو.نو ددې صدقه کول به هم واجب نه وي.

وَهٰذَافِي الْخُبْثِ الَّذِي اودا توپیر په هغه خبث کې دې سَبَبُهٗ فَسَادُ الْمِلْكِ چې دهغې سبب فساد د ملك وي

**تشریح** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د «مایتعین» او «مالایتعین» په مینځ کې توپیر په هغه خبث کې دې.د
کوم سبب چې فساد دملك دې.یعنی که په فساد د ملك سره په «مایتعین» کې خبث پیدا شو.نودا دده لپاره حلال
نه دې.بلکه ددې صدقه کول واجب دی.لکه دمتن په مسئله کې چې د وینځې د خرڅولو صورت دې اوکه د ملك د
فساد په وجه په «مالایتعین» کې خبث پیداشو.نودا حلال دې.صدقه کول نې واجب نه دی.لکه دمتن په مسئله
کې چې د دراهمو او دنانیرو صورت دې.

أَمَّا الْخُبْثُ لِعَدَمِ الْمِلْكِ اوهغه خبث چې د عدم ملك په وجه وي فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ يَشْمَلُ النَّوْعَيْنِ نو د طرفینو رحمهما الله په
نیز به ددې سبب دواړه قسمونو ته ګډ وي.

**حل اللغة:-** ① العدم،غیرموجود ، ② یشمل،شاملیږي، ③ سلامة،بې عیبه ④ ،التقدیر،اندازه کول

**تشریح** خوکه نفع کې د عدم ملك په وجه فساد پیدا شو.مثلاً یوکس وینځه غصب کړله.اومالك ته نې ددې د قیمت
ضمان اداکړو.اودا نې خرڅه کړله.او نفع نې حاصله کړله.یا مثلاً دراهم نې غصب کړل.او ددې ضمان نې ادا
کړلو.بیا نې ددې دراهمو په عوض څه شئ واخستلو.هغه نې خرڅ کړلو.او نفع نې حاصل کړله.نود طرفینو رحمهما الله په
نیز دواړو صورتونو کې نفع صدقه کول واجب دی.ځکه چې هرکله دعدم ملك په وجه خبث پیداشو.نودا په «
مایتعین» اوپه «مالایتعین» دواړو کې موثر کیږي.امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چه دا نفع د غاصب لپاره حلال ده.

لِتَعَلُّقِ الْعَقْدِ فِيمَا يَتَعَيَّنُ حَقِيقَةً ځکه چې عقدثاني به په متعین کې حقیقةً وي.

**تشریح:-** د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه عقد ،،مایتعین،، سره حقیقتاً متعلق کیږي.یعنی چې کله نې وینځه غصب
کړله.او خرڅه نې کړله.نودا عقدبیع به هم دې مغصوبه وینځې سره متعلق وي.ځکه چې د بائع لپاره ددې وینځې
په ځائې دویمه وینځه سپارل جائز نه دي.او هرکله چې عقدبیع حقیقتاً مغصوبه وینځې سره متعلق دې.نو ددې نه
چې کومه نفع حاصل شي.په هغې کې به هم حقیقت د خبث متحقق وي.اوچونکه حقیقت د خبث حلال نه دې.ځکه
به ددې نفع صدقه کول واجب وي.

وَفِيمَا لَا يَتَعَيَّنُ شُبْهَةً او غیرمتعین کې شبهة مِنْ حَيْثُ أَنَّهٗ يَتَعَلَّقُ بِهٖ سَلَامَةُ الْمَبِيعِ په دې اعتبار سره.چه ددې سره د مبیع
سلامتی متعلق کیږي أَوْ تَقْدِيرُ الثَّمَنِ یا د ثمن تقدیر متعلق کیږي.

**تشریح:-** اود ،، مالایتعین،، سره د عقدبیع تعلق د شبهه په حیثیت سره دې.یعنی چې کله نې دراهم غصب کړل.او
ددې په عوض نې څه شئ واخستلو .نودا اخستل به دې دراهمو سره د شبهه په حیثیت سره متعلق وي.
دلیل دا دې چې کله نې د دراهم مغصوبه په عوض څه شئ واخستلو.نو ددې یو صورت دا دې چې دراهم
مغصوبه ارخ ته اشاره اوکړي مثلا داسې به نې وئیلې وي.چه ددې دراهمو په عوض مې داشیان واخستل.اوهم
ددې نه مې اداکړل.نو په دې صورت کې دراهم مغصوبه سره سلامت مبیع متعلق دې.ځکه چې هرکله دراهم
مغصوبه ثمن واقع دی.نوهم ددې په وجه به غاصب لپاره مبیع سلامت پاتې وي.او هرکله چې دراهم مغصوبه د
سلامت مبیع سبب جوړشو.نو ددې سره اګرچه حقیقةً عقدبیع متعلق نشو.ځکه چې دراهم او دنانیر متعین کاوه
سره نه متعین کیږي.خوچونکه دا د سلامت مبیع ذریعه دی.په دې وجه دې سره د عقد تعلق شبهةً ضروري دې.
او دوهم صورت نې دا دې چې دراهم مغصوبه ارخ ته اشاره اوکړي خو ثمن به نې ددې نه علاوه اداکړې وي.نو په
دې صورت کې دراهم مغصوبه سره تقدیر د ثمن متعلق دې.یعنی دراهم مغصوبه نې اګرچه نه دی ادا کړې.خوپه
سره د ثمن اندازه شوې ده.ځکه چې د ثمن جنس،ددې وصف،او مقدار بیانول ضروري دی.اودا ټولې خبرې د



دراهم مغصوبه په ذریعه معلومې شوې دی.نو دراهم مغصوبه سره به د عقدبیع تعلق حقیقةً نه وي.خو شبهةً به
ضرور وي.

حاصل داچه دراهم مغصوبه سره د عقدبیع تعلق د شبهه په اعتبار سره دې.او هرکله چې د عقدبیع تعلق دراهم
مغصوبه سره دشبهه په اعتبارسره دې.نو په دې عقدسره چې کومه نفع شوې وي.په هغې کې به هم خبث شبهة
وي.اوچونکه حقیقتاً خبث،او شبهةً خبث دواړه حلال نه دی.په دې وجه ددې دواړو صدقه کول واجب دی.

**دلیله** او ددې دواړو دحلال نه کیدلو دلیل داحدیث دې. «أن النبي ﷺ نهى عن الربوا والريبة» یعنی نبي کریم ﷺ د ربوا
او شبه ربوا دواړو نه منع فرمائیلې ده.

وَعِنْدَ فَسَادِ الْمِلْكِ تَنْقَلِبُ الْحَقِيقَةُ شُبْهَةً اود ملك د فساد په وخت حقیقت په شبهةً سره بدلیږي وَالشُّبْهَةُ تَنْزِلُ إِلَى شُبْهَةِ الشُّبْهَةِ او
شبه کمیږي.اود شبه، شبه جوړیږي وَالشُّبْهَةُ هِيَ الْمُعْتَبَرَةُ حالانکه معتبر شبه ده دُونَ النَّازِلِ عَنْهَا اوکوم چې د شبه نه
لاندې وي.هغه معتبر نه وي.

**حل اللغة:-** ① ینقلب،بدلیږي، ② تنزل،کمیږي، ③ النازل،لاندې، ④ الشبهة،شك

**تشریح:-** د فساد ملك په صورت کې نفع چونکه د غیر د مال نه نه حاصلیږي.بلکه د خپل مال نه حاصلیږي.اګرچه
په دې کې ملك فاسد دې.په دې وجه د فساد ملك په صورت کې حقیقت د خبث بدلیږي.او شبهة خبث جوړیږي.او
شبهة الخبث بدلیږي.او شبهة شبهة الخبث جوړیږي.حاصل داچه د فسادملك په صورت کې په ،، مایتعین،، کې
شبهة الخبث پیداکیږي.او په ،، مالایتعین،، کې شبهة شبهة الخبث پیدا کیږي.او په شریعت کې شبهة الخبث
معتبردې.خو ددې نه لاندې شبه یعنی شبهة شبهة الخبث معتبر نه ده.په دې وجه د فساد ملك په صورت کې په
مایتعین کې چې کومه شبهة الخبث پیدا شوې ده.د هغې صدقه کول واجب دی.خو په ،، مالایتعین،، کې چې
کومه شبهة شبهة الخبث پیدا شوې ده.د هغې صدقه کول واجب نه دی.

### په دروغ دعوه سره مال حاصلولونه روسته نفع اخستل

قَالَ فرمایي وَكَذٰلِكَ إِذَا ادَّعٰى عَلٰى آخَرَ مَالًا فَقَضَاهُ إِيَّاهُ اوهم دغه ډول که یوکس په بل باندې دمال دعوه اوکړله.
نو مدعی علیه مدعی ته اداکړو ثُمَّ تَصَادَقَا بیا دواړه خپل منځ کې په رښتیا (حق) سره اوونیل أَنَّهٗ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ
شَيْءٌ چې په مدعی علیه باندې هیڅ مال نه وو وَقَدْ رَبِحَ الْمُدَّعِي فِي الدَّرَاهِمِ حالانکه مدعی په دې دراهمو نه نفع
اوچته کړې ده يَطِيبُ لَهُ الرِّبْحُ نود مدعی لپاره نفع حلال ده.

**حل اللغة:-** ① التصادق،دیوبل تصدیق کول، ② الربح،ګټه، ③ یطیب،حلال ده ④ ،الدارهم،جمع د درهم،روپۍ

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی په بل کس باندې دعوه اوکړله.چه زما په تا باندې زر روپۍ دی.نو ته
زر روپۍ ادا کړه.نو مدعی علیه زر روپۍ مدعی ته اداکړلې.بیا دواړه په دې باندې متفق شو.چه د مدعی په
مدعی علیه باندې هیڅ واجب نه وو.حالانکه په دې موده کې مدعی د مدعی علیه ددې رقم نه فائده حاصله کړې
ده.نودا نفع د مدعی لپاره حلال ده.ددې صدقه کول واجب نه دی.

لِأَنَّ الْخُبْثَ لِفَسَادِ الْمِلْكِ هٰهُنَا، ځکه چې دلته کې خبث ملك دفساد په وجه دې لِأَنَّ الدَّيْنَ وَجَبَ بِالتَّسْمِيَةِ ځکه چې پور د
مدعی په دعوه کاوه سره واجب شوې دې ثُمَّ اسْتُحِقَّ بِالتَّصَادُقِ بیا خپل منځ کې تصدیق سره دا قرضه مستحق
شوې ده.

**حل اللغة:-** ① الخبث،حرمت، ② الدین،قرض، ③ یتعین،معین کیږي، ④ التسمیة،په نوم سره معین کول

**تشریح:-** دلیل دا دې چې دلته کې خبث د فسادملك په وجه دې.اود فساد ملك په وجه خبث ځکه دې.چه د مدعی د
زرو روپو دعوه په وخت،د مدعی علیه د اقرار په وجه، په مدعی علیه باندې زر روپۍ دین (قرضه) واجب شوې
ده.او دین،، ما وجب فی الذمه،، ته وائي.نو هرکله چې مدعی علیه مدعی ته زر روپۍ ادا کړلې.او مدعی په دې
باندې قبضه اوکړله.نودا زر روپۍ د دین بدل دې.دین نه دې.ځکه چې دین مال نه وي.بلکه دین هغه حق وي.کوم

چې د مدیون په ذمه ثابت وی.نو هرکله چې مدعی او مدعی علیه په دې باندې اتفاق اوکړلو.چه په مدعی علیه باندې هیڅ واجب نه دی.نو ګویا دین مستحق شوې دې.یعنی داسې شوه.ګویا په دین باندې یوکس د استحقاق دعوه اوکړله.اودا ئې واخستلو.

> وَبَدَلُ الْمُسْتَحِقِّ مَمْلُوكٌ او ددې مستحق پور بدل مملوک دې فَلَا يَعْمَلُ ځکه به ( خبث ) په هغه دراهمو کې اثر نه کوی فِيمَا لَا يَتَعَيَّنُ کوم چې نه متتعین کیږی.

تشریح:- او هرکله چې دین مستحق شو.نو ددې بدل یعنی په زر روپو کې به دمدعی ملک فاسد شی.او هرکله چې مدعی د زرو روپو په عوض وینځه واخستله.بیا مشتری په وینځه او بائع په ثمن باندې قبضه اوکړله.ددې نه روسته وینځه مستحق شوه.نودا زر روپۍ به د بائع مملوک وی.خو مشتری ته به ددې واپس کول واجب وی.دغه ډول د دین عوض زر روپۍ، د دین مستحق کیدلو نه روسته د مدعی مملوک دې.خو فاسد دې.او په ملک فاسد سره چې کومه نفع حاصلیږی.په هغې کې خبث وی.نومدعی چې په زر روپو کومه نفع حاصل کړې ده.هغه خبث دې.خو چونکه روپۍ یعنی دراهم متعین ګاوه باوجود نه متعین کیږی.ځکه به په دې کې خبث موثر نه وی.ځکه چې کوم خبث د فسادملک په وجه پیدا کیږی.هغه په،، مالایتعین،، کې نه موثر کیږی.نوهرکله چې دلته کې خبث موثر نشو.نود مدعی لپاره دا نفع حلال ده.او ددې صدقه کول واجب نه ده.

## فصل فيما يكره

ژباړه ( دا) فصل د مکروهاتو( د بیع په بیان کې ) دې.

تشریح:- دفاسد مرتبه چونکه دمکروه د مرتبې نه قوی ده دې نه اول ئې د بیع فاسد بیان وفرمائیلو او کوم او اوس په دې فصل کې د بیع مکروه صورتونه بیانوی اود فاسد او مکروه په مینځ کې توپیر هغه دې کوم چې اصولیانو ذکر کړی دې که قبح د وصف متصل په وجه وی.نو فاسد ده.او که قبیح د امرمجاور( لاحق امر) په وجه وی.نو مکروه ده.بیا د مکروه دوې (دوه) قسمونه دی.① مکروه تحریمی اودا حرامو ته نژدې وی.② مکروه تنزیهی اومکروه دا مباح ته نژدې وی

### د نجش تعریف اوشرعي حیثیت

> قَالَ وَنَهَى رَسُولُ اللهِ ﷺ عَنِ النَّجْشِ فرمائی.چه نبی کریم ﷺ د نجش نه منع فرمائیلې ده وَهُوَ أَنْ يَزِيْدَ فِي الثَّمَنِ او نجش دادې.چه په ثمن کې اضافه اوکړی وَلَا يُرِيْدُ الشِّرَاءَ حالانکه پخپله اخستل نه غواړی لِيُرَغِّبَ غَيْرَهُ چې نور خلګ تیز کړی

تشریح:- نجش،د نون اوجیم په فتح سره،رسول الله ﷺ د بیع نجش نه منع فرمائیلې ده.او بیع نجش داده.چه مشتری د مبیع ثمن ددې د قیمت په اندازه لګولې دې.خو یوسړې په ثمن کې اضافه کوی.یعنی وائی. چې زه د مشتری بیان شوی ثمن نه د دومره زیاتی ثمن په عوض اخلم.حالانکه دده آراده د اخستلو نه وی.بلکه صرف مشتری ته دهوکه ورکول او تیزول مقصود وی.چه مشتری نور قیمت هم زیات کړی.او وانخلی.او دهوکه یو قبیح امر دې.کوم چې ددې بیع مجاور( مولبنتی ) دې.اود امرقبیح چې د بیع مجاورشی.نو بیع مکروه کیږی.په دې وجه به دا بیع مکروه وی. خو که مشتری د قیمت په اندازه ثمن نه دې لګولې.او بل دوهم کس څه پیسې زیاتی کړې.اود قیمت په اندازه ئې کړلو.حالانکه دې اخستل نه غواړی.نودا جائز دی.ځکه چې په دې کې دمشتری د نقصان نه بغیر د یومسلمان یعنی د بائع نفع ده.اوښکاره ده.چه په دې کې هیڅ باک نشته.

> وَقَالَ " {لَا تَنَاجَشُوا}( ۱ )رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه نجش مه کوئ.

(۱) حدیث أبی هریرة رضی الله عنه أخرجه البخاری فی البیوع باب ٦٤ ومسلم فی البیوع رقم ۱۱ وأبوداود فی البیوع باب ٤٦ والنسائی



فرمائیلی دی ﴿لاتناجشوا﴾ یعنی د بیع نجش ارتکاب مه کوئ.اود دې د عدم جواز دلیل دا دې چې رسول الله ﷺ

> قَالَ وَعَنِ السَّوْمِ عَلَى سَوْمِ غَيْرِهِ قدوری رحمه الله فرمائی.اود ددیم په نرخ کاوه باندې نرخ ( بهاو) مه کوئ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {لَا يَسْتَامِ الرَّجُلُ عَلَى سَوْمِ أَخِيهِ چې هیڅ څوک دې د خپل رور په نرخ باندې نرخ نه کوی وَلَا يَخْطُبُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ}( ۲ ).اود خپل رور په کوېژدن دې کوېژدن نه کوی.

حل اللغة:- ① السوم،نرخ، ② اخ،ورور، ③ خطبة،دنکاح پیغام لیږل، ④ الایحاش،زړه ویرول

تشریح:- اود یوسړی په معامله برابرولو باندې د نرخ کاوه نه هم منع فرمائیلې ده.لکه چې حدیث دې. ﴿لایستام الرجل علی سوم اخیه ولا یخطب علی خطبة اخیه﴾ یعنی هیڅ څوک سړې دې د خپل رور په رخ کاوه باندې نرخ ( بهاو) نه کوی.اود خپل رور په کوېژدن دې کوېژدن نه کوی.د ﴿لایستام الرجل علی سوم اخیه﴾ صورت دادې.چه دوې (دوه) سړی د یوسامان په عوض باندې راضی شو.یعنی بائع په خرڅولو باندې راضی شو.او مشتری په اخستلو باندې راضی شو.اوس دریم سړې راشی.او اووائی.چه زه به هم دا سامان ددې نه د کم ثمن په عوض درکړم.ښکاره ده.چه په دې صورت کې د سامان والا نقصان دې.اوکه ده سامان والا ته اووئیل.چه زه دا سامان د زیاتی ثمن په عوض اخلم.نو په دې صورت کې د مشتری نقصان دې.

> وَلِأَنَّ فِي ذَلِكَ إِيحَاشًا او ځکه چې په داسې کولو کې د بل زړه ته یره ورکول وَإِضْرَارًا او ضرر رسولی کیږی.

تشریح:- اوبله د دې امله دا بیع ناجائز ده چې د،، سوم علی سوم اخیه،، په صورت کښې د،،احدالمتعاقدین،، په زړه کې یره اچول دی.او دوی ته ضرر رسول دی.اودا دواړه شیان قبیح دی.خود بیع نه جداکیدلې هم شی.ځکه په ددې امورقبیحه په وجه بیع مکروه وی.

> وَهَذَا اودا کراهت هغه وخت دې إِذَا تَرَاضَى الْمُتَعَاقِدَانِ عَلَى مَبْلَغٍ ثَمَنًا فِي الْمُسَاوَمَةِ، چې دواړه بیع کونکی په نرخ کولوکې د ثمن په څه اندازه باندې راضی شی. فَأَمَّا إِذَا لَمْ يَرْكَنْ أَحَدُهُمَا إِلَى الْآخَرِ او که په دواړوکې یوکس دوهم اړخ ته مائل نه وی فَهُوَ بَيْعُ مَنْ يَزِيدُ وَلَا بَأْسَ بِهِ نودا،، بیع من یزید،، ده.او په دې کې هیڅ باک نشته عَلَى مَا نَذْكُرُهُ لکه چې موږ به وراندې ذکرکړو.

حل اللغة:- ① مبلغ،اندازه، ② الرکن،میلان، ③ المساومة،نرخ کول، ④ التراضی،د جانبینو رضا مندی

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه،، سوم علی سوم اخیه،، هغه وخت مکروه وی.چه کله عاقدین په معامله کولوکې په څه ثمن باندې راضی شوې وی.که تر اوسه پورې څوک یو اړخ ته مائل شوی نه وی. او دریم کس راغی.او پیسې ئې زیاتې کړلې.نودا به،، سوم علی سوم غیره،، نه وی.بلکه دا بیع،، من یزید،، ده.یعنی نیلامی کول او بولی کاوه سره خرڅ کول دی.او په نیلامی کاوه سره په خرڅولوکې هیڅ باک نشته.لکه چې د حضرت انس رضی الله عنه حدیث دې. ﴿ان النبی ﷺ باع قدحاً وحلساً بیع من یزید﴾ یعنی رسول الله ﷺ یوه پیالۍ او یوټاټ د بیع من یزید په طریقه خرڅ کړی دی.یعنی په نیلام سره ئې خرڅ کړی دی.

> وَمَا ذَكَرْنَاهُ مَحْمَلُ النَّهْيِ فِي النِّكَاحِ أَيْضًا او په نکاح کې هم د حدیث محمل هم دادې.کوم چې موږ ذکرکړو.

تشریح:- او په نکاح کې د حدیث ﴿لا یخطب علی خطبة اخیه﴾ محمل هم دادې.کوم چې موږ ذکر کړې دې.یعنی که د ښځې زړه د نکاح پیغام ورکونکی اړخ ته مائل شو.نو اوس د بل سړی دې ښځې ته د نکاح پیغام ورکول مکروه

فی البیوع باب ١٤ ومالک فی البیوع رقم ٩٦ وأحمد فی المسند(٢/٢٤٢)_

(٢) من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه البخاری فی البیوع باب ٥٨ رقم ٢١٣٩ ومسلم فی البیوع رقم ٧)_

دی.اوکه د ښځې زړه مائل نشو.نو بیا دې ته د نکاح پیغام په ورکولوکې څه کراهت نشته.

### د تلقي جلب حکم

قَالَ وَعَنْ تَلَقِّي الْجَلَبِ فرمائي.چه نبي کریم ﷺ د تلقي جلب نه منع فرمائیلې ده وَهَذَا إِذَا كَانَ يَضُرُّ بِأَهْلِ الْبَلَدِ اودا حکم هغه وخت دې.چه د ښار (اوسیدونکو) خلګو ته ضرر رسیږي فَإِنْ كَانَ لَا يَضُرُّ نوکه د ښار خلګو ته ضرر نه رسیږي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کې هیڅ باك نشته.

**حل اللغة:-** ① البلد،ښار، ② تلقي،ملاویدل، ③ الجلب،نفع، ④ یضر،نقصان رسوی

**تشریح:-** د تلقي جلب یو څو صورتونه دي. دا چې په ښارکې کاختی (قحط) وي.خوچه کله د ښار بعضو سوداګرو ته د غلې د قافلې راتګ و خبرملاؤ شي.نو دوی د ښار نه بهر اوځي.اود قافلې والو نه ټوله غله واخلي.چه د خپلې خوښې په قیمت ئې وپلوري. په دې صورت بیع خکه مکروه دې.چه په دې صورت کې د ښار خلګ په کاختی (قحط) اود غله نه کیدلو په وجه په ضرر او (خفګان کې اخته دي.اود سوداګرو په دې عمل سره به د ښار د خلګو په (خفګان کې نوره هم اضافه اوشي.اوڅوك په (خفګان کې مبتلاکول امرقبیح دې.خودا امرقبیح داسې دې.چه دا د بیع نه جداکیدلې شي.خکه به په دې وجه بیع مکروه وي.اوپه مذکوره صورت کې که د ښار خلګو ته ضرر نه وي نو بیا په کې څه کراهت نشته.

إِلَّا إِذَا لَبَّسَ السِّعْرَ عَلَى الْوَارِدِينَ وَالضَّرَرِ خو کله چې په راتلونکو باندې نرخ پټ کړي فَحِينَئِذٍ يُكْرَهُ نو دغه وخت مکروه دې لِمَا فِيهِ مِنَ الْغُرُورِ خکه چې په دې کې دهوکه او ضرر دې.

**حل اللغة:-** ① البس،اغوستل، ② الغرور،دهوکه، ③ الواردین،جمع د ارد،راتلونکي، ④ یکره،مکروه ده

**تشریح:-** دوهم صورت دا دې چې د قافلې والو نه په آرزان قیمت غله واخلي.اود ښار نرخ په دوی باندې پټ اوساتي.او دوی پخپله هم د ښار د قیمت نه ناخبره وي. په دې صورت کې چونکه د راتلونکي قافلې په خلګو باندې نرخ پټ کړې شوې دې.او دوی ته دهوکه ورکړې شوې ده.او دهوکه ورکول امرقبیح دې.خکه به په دې صورت کې هم بیع مکروه وي.

### د ښارئي والا د کلي والا لپاره د خرڅولو حکم

قَالَ وَعَنْ بَيْعِ الْحَاضِرِ لِلْبَادِي فرمائي.اود کلي والا لپاره د ښار د اوسیدونکی خرڅولو نه منع (فرمائیلې شوې) ده فَقَدْ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا يَبِيعُ الْحَاضِرُ لِلْبَادِي} (1) رسول الله ﷺ فرمائیلي دي.د ښار اوسیدونکې دې د کلي والو لپاره خرڅول نه کوي وَهَذَا إِذَا كَانَ أَهْلُ الْبَلَدِ فِي کاختی (قحط) وَعَوَزٍ اودا حکم هغه وخت دې.کله چې د ښار خلګ په کاختی (قحط) او محتاجۍ کې وي.

**حل اللغة:-** ① الحاضر،ښارې، ② البادي،کلي وال، ③ عوز،محتاجي، ④ البلدة،ښار

**تشریح:-** ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي.چه بیع حاضر للبادي مکروه ده.خکه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي. «لا یبیع الحاضر للبادي» د دې صورت به دا وي چې دیو ښاري سره غله ده.خودې ئې د ښار په خلګو نه خرڅوي.بلکه د کلو او بانډیچو په خلګ ئې خرڅوي.او ددې نه مقصد ګران قیمت وصول کول وي.خکه چې د ښار خلګ د نرخ اومعاملاتو نه د خبریدلو په وجه په ګران قیمت باندې په اخستلو باندې نه راضي کیږي.اود کلو خلګ به د خپلې سادګۍ په وجه دده په چکر (دهوکه) کې راشي. نوپه دې صورت کې که د ښار خلګ په کاختی (قحط) اوپه تنګۍ کې وي.او دده په دې عمل سره به د ښار اوسیدونکو ته تکلیف وي. نو بیع مکروه ده.خکه چې په دې کې دوی ته ضرر دې

(1) الحديث المذكور من حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه البخاري في الشروط باب ١١ رقم ٢٧٢٧ ومسلم في البيوع رقم ١٢)_



وَهُوَ أَنْ يَبِيعَ مِنْ أَهْلِ الْبَدْوِ اود ښار سړي د کلي والا لپاره په دې لالچ خرڅوي وَطَمَعًا فِي الثَّمَنِ الْغَالِي چې ده ته به ګران قیمت ملاؤ شي لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِضْرَارِ بِهِمْ خکه چې په دې کې د ښار خلګو ته ضرر دې. أَمَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ كَذَلِكَ فَلَا بَأْسَ بِهِ بهر حال کله چې داسې نه وي.نو په دې کې هیڅ حرج نشته هرحال کله چې داسې نه وي.نو په دې کې هیڅ حرج نشته لِانْعِدَامِ الضَّرَرِ خکه (چې اوس) ضرر نشته.

**حل اللغة:-** ① الطمع،لالچ، ② الثمن العالي،زیات قیمت، ③ الاضرار،ضرر رسول، ④ لاباس،باك نشته

**تشریح:-** اوکه د ښار خلګ په وسعت (فراخۍ) کې وي.او دده په دې عمل یعنې دکلو والو په خلګو باندې خرڅولو سره څه ضرر نه کیږي.نو په دې کې هیڅ باك نشته.

### د جمعې د اذان په وخت د بیع حکم

قَالَ وَالْبَيْعَ عِنْدَ أَذَانِ الْجُمُعَةِ فرمائي.چه د جمعې د اذان په وخت بیع مکروه ده قَالَ اللهُ تَعَالَى {وَذَرُوا الْبَيْعَ} الله تعالی فرمائیلي دي.چه د جمعې د اذان په وخت بیع پریږدئ.

**تشریح:-** د جمعې د اذان نه روسته اخستل خرڅول هم مکروه دي.د الله تعالی ارشاد دې.چه د جمعې اذان اوشي.نود جمعې لمونځ اوخطبې اړخ ته په تلوار ورځئ.او کاروبار بندکړئ.

ثُمَّ فِيهِ إِخْلَالٌ بِوَاجِبِ السَّعْيِ عَلَى بَعْضِ الْوُجُوهِ بیا په داسې بیع کې بعض صورتونوکې په سعي واجب کې خلل پیداکیږي.

**تشریح:-** په دې کې قباحت دې.خکه چې بعض وخت که د اذان نه روسته ناسته یا په ولاړه اخستل خرڅول اوکړې شي.نو،، سعي الی الجمعه،، کوم چې واجب ده.په دې کې خلل پیداکیږي.او په امرواجب کې خلل واقع کیدل یوقبیح امر دې.نو ددې امرقبیح په وجه د جمعې د اذان نه روسته اخستل خرڅول مکروه دي.البته که جامع مسجد ته په تلو تلوکې څه معامله اوشوه.نو په دې کې څه باك نشته.خکه چې ددې په وجه په،، سعي الی الجمعه،،کې خلل نه پیداکیږي.

وَقَدْ ذَكَرْنَا الْأَذَانَ الْمُعْتَبَرَ فِيهِ فِي كِتَابِ الصَّلَاةِ اوکوم اذان چې معتبر دې.موږ دا په،، کتاب الصلاة،، ذکرکړې دی.

**تشریح:-** او پاتې شوه داخبره چې د اذان نه کوم اذان مراد دې.نو په کتاب الصلاة کې تیر شوی دی.چه رومبې اذان مراد دې.په دې شرط چې اذان د زوال نه روسته وئیلې شوې وي.

### په ذکرشوي بیوع کښې د کراهت وجه

قَالَ وَكُلُّ ذَلِكَ يُكْرَهُ اودا واړه بیوع مکروه دي لِمَا ذَكَرْنَا،د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې وَلَا يَفْسُدُ بِهِ الْبَيْعُ اود کراهت په وجه به بیع فاسد نه وي.

**تشریح:-** ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي.چه د اول فصل نه واخله اوسه پورې چې څومره بیوع ذکردي.واړه مکروه دي.او د کراهت په وجه به بیع فاسد نه وي.

لِأَنَّ الْفَسَادَ فِي مَعْنًى خَارِجٍ زَائِدٍ خکه چې فساد د داسې معنی په وجه دې.کوم چې د خارج نه زیات دې لَا فِي صُلْبِ الْعَقْدِ په صلب عقدکې نه دې وَلَا فِي شَرَائِطِ الصِّحَّةِ اونه د صحت په شرائطو کې دې.

**حل اللغة:-** ① معنی،وجه، ② خارج،د عقد نه بهر، ③ زائد،زیاتي، ④ صلب،مینځ

**تشریح:-** خکه چې فساد یعنې قبح په داسې معنی کې ده.کومه چې د عقد نه خارج ده. البته د عقد سره مجاور دې او پاتې شو صلب عقد اود صحت شرائط نوپه هغې کې هیڅ قباحت نشته.اوکوم قباحت چې په خارجي مجاور معنی کې وي.د هغې په وجه بیع مکروه کیږي.فاسدیږي نه.په دې وجه په ذکرشوي ټولو صورتونوکې به بیع مکروه وي.فاسد به نه وي.

## د بيع.. من يزيد.. حکم

قَالَ وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ مَنْ يَزِيدُ مصنف ﷫ فرمائي. اوپه داسې بيع کې هيڅ باك نشته مصنف ﷫ فرمائي. اوپه داسې بيع کې هيڅ باك نشته وَتَفْسِيرُهُ مَا ذَكَرْنَا او ددې تفسير هم هغه دې. کوم چې موږ ذکرکړې دې.

تشريح:- بيع من يزيد بغير د کراهته جائز ده. اود بيع من يزيد تفسير وړاندې تيرشوې دې. چه يوځيز نيلام کول.

وَقَدْ صَحَّ اودا صحيح ده. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَاعَ قَدَحًا وَحِلْسًا بِبَيْعِ مَنْ يَزِيدُ}(1) چې رسول الله ﷺ يوه پياله او يوه پيړه کمبل د بيع من يزيد په طريقه خرڅ کړل.

حل اللغة:- ① قدح، پيالی، ② الحلس، پيړه کپړه، ③ الحاجة، ضرورت، ④ ماسة، پيښ دي

تشريح:- اودا خبره په صحيح سند سره ثابته ده چې نبي بولي لګولي ده لکه په ابوداود کې چې روايت دې چې يوانصاري سړی رسول الله ﷺ له راغی، سوال ئې اوکړلو. نبي کريم ﷺ پوښتنه اوکړه. چه ستا په کورکې څه شته ده ځکو. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل. هغه دواړه شيان ماله راوړه. (انس ﷜ وائي) هغه ئې دواړه راوړل. نبي کريم ﷺ دا دواړه واخستل. او وې فرمائيل. دا دواړه شيان څوك اخلي. يوسړی اووئيل. دا دواړه شيان د يودرهم په عوض زه اخلم. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل. چه د يو روپۍ نه زياتي څوك ورکوی. (دا خبره ئې) دوې (دوه) درې ځله اوفرمائيله. يو سړی اووئيل. چه زه ئې د دوې (دوه) درهمو په عوض اخلم. نبي کريم ﷺ دا دواړه شيان هغه ته ورکړل. او دوې (دوه) درهمه ئې واخستل. او انصاري سړی ته ئې ورکړل. او وې فرمائيل. چه په يو درهم غله واخله. او خپل کورکې ئې ورکړه. او په يو درهم تبر واخله. او راشه. هغه تبرواخستلو. او راغی. نو نبي کريم ﷺ په دې کې پخپل لاس يو لرګی (لاسکی) واچولو. او وې فرمائيل. لاړ شه لرګی. کټ کوه. او خرڅوه ئې. پنځلس ورځو پورې زه تا دلته اونه وينم. هغه سړي لاړلو. او لرګی به ئې کټ کول. راوړل به ئې. او خرڅولو به ئې. بيا هغه سړی راغی. اوده لس درهمه ګټلي وو. په څه ئې کپړه واخستله. او په څه ئې غله واخستله. نبي کريم ﷺ ورته اوفرمائيل. ستا لپاره دا ددې نه غوره ده. چه دقيامت په ورځ په داسې حال کې راشې. چه ستا په مخ يو داغ وی. سوال کول ټيك نه دې. خود دريو سړو لپاره (يوهغه کس) چې ډيرزيات محتاج وی. په خاوروکې لوغړېږي. (دوهم هغه کس) چې ډيره غټه پره ونکې قرضه ئې په سروی. (دريم هغه کس) چې خون ئې کړې وی. او په ده باندې ديت لازم وی. اودې ديت نشي اداکولې. (نو دوی د مجبورۍ نه سوال کولې شي.) ددې حديث نه معلومه شوه. چه په نيلام سره خرڅول جائز دی. ګنې صاحب شريعت ﷺ به داسې ولې کول.

وَلِأَنَّهُ بَيْعُ الْفُقَرَاءِ او ځکه چې دا بيع د فقيرانو بيع ده وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَى نَوْعٍ مِنْهُ او دې اړخ ته اړتيا داعی دې.

تشريح:- دوهم دليل دادې. چه بيع من يزيد يعنی نيلام کول د فقيرانو بيع ده. او فقيرانو ته زيات نه زيات نفع رسولو لپاره ددې اړتيا هم پيښيږي. ځکه دا بيع جائز ده.

## په دوې (دوه) ذی رحم محرم صغيرغلامانوکښې د تفريق حکم

نوع منه (د بيع مکروه) يو ډول دادې قَالَ وَمَنْ مَلَكَ مَمْلُوكَيْنِ صَغِيرَيْنِ که يوکس دداسې دوې (دوه) صغيرمملوك مالك شو أَحَدُهُمَا ذُو رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنَ الْآخَرِ چې په دې دواړوکې يو د بل ذی‌رحم محرم دې. لَمْ يُفَرِّقْ بَيْنَهُمَا نو په دې دواړوکې به جدائی نه کوی وَكَذَلِكَ إِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا كَبِيرًا وهم دغه ډول که په دې دواړوکې يو بالغ وی.

حل اللغة:- ① مملوکين، تثنيه د مملوك، غلام، ② صغيرين، تثنيه د صغير، ماشوم، ③ ذورحم، محرم

(۱) من حديث أنس بن مالك ﷜ أخرجه أبوداود فی الزكاة باب ۲۶ رقم ۱۶۴۱ وابن ماجه فی التجارات باب ۲۵ رقم ۲۱۹۸ والترمذی فی البيوع باب ۱۰ رقم ۱۲۱۸ والنسائی فی البيوع باب ۲۲ رقم ۴۵۰۸)_



تشريح:- صورت د مسئلې دادې. که يوکس دداسې دوې (دوه) نابالغه ماشومانو مالك شو. چه دوی پخپلوکې د يوبل ذی رحم محرم دی. په دوی‌کې يو نابالغ دې. او يوبالغ دې. نو ددې دواړو په مينځ کې جدائی کول مکروه ده. جدائی که په دوی‌کې د يوکس په خرڅولو سره وی. يا په هبه کولوسره وی. يا په وصيت کاوه سره وی. په هرصورت کې مکروه ده. يعنی بيع اګرچه جائز ده. خود تفريق کاوه په وجه به ګناهګار وی. اوهم ددې ګناه په وجه بيع مکروه ده. ځوکه دواړه مملوك بالغ وی. نو ددوی په مينځ کښې جدائی کولوکې هيڅ کراهت نشته.

وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ ﷺ په اصل کې په دې مسئله کې د نبي کريم ﷺ دا قول دې {مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا فَرَّقَ اللَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَحِبَّتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ}(1) چې چا په مور او ددې د بچی په منځ کې جدائی اوکړله نو الله تعالی به دده او دده د دوستانو په منځ کې د قيامت په ورځ جدائی اوکړی.

حل اللغة:- ① والدة، مور، ② ولد، بچې، ③ الاحبة، جمع د حبيب، دوست، ④ يوم، ورځ

تشريح:- په دې مسئله کې اصل دا حديث دې. چه نبي کريم ﷺ فرمائيلي دی چه،، چا په مور او دده د بچی په مينځ کې جدائی اوکړله الله تعالی دې د قيامت په ورځ دده او دده د دوستانو په مينځ کې جدائی اوکړی،، دا د رسول الله ﷺ د اړخه بددعا ده. اوکه دا خبر اومنلې شی، او دا ژباړه اوشی. چه الله تعالی به د قيامت په ورځ دده او دده د دوستانو په مينځ کې جلا اوکړی. نودا دسزا په طور دی. ځکه چې د دوستانو جدائی سزا ده. بهرحال که بددعا وی. او که سزا وی. په دواړه صورتونوکې د مور اودده دبچی په مينځ کې تفريق کونکی لپاره وعيد دې. اودا وعيد د تفريق په وجه راغلې دې. او په کوم شئ چې وعيد بيان شوې وی. هغه ناجائز وی. ځکه به دمور او ددې د بچی په مينځ کې تفريق کول ناجائز وی. او تفريق چونکه يوداسې امرقبيح دې. کوم چې بيع سره متصل وی. خود عقدبيع نه جداکيدلې هم شی. ځکه به ددې په وجه بيع فاسد خو نه وی. البته مکروه به وی.

{وَوَهَبَ النَّبِيُّ ﷺ لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ غُلَامَيْنِ أَخَوَيْنِ صَغِيرَيْنِ او نبي کريم ﷺ دوې (دوه) صغير غلامان چې رونړه وو. حضرت علی ﷜ ته عطاء کړل ثُمَّ قَالَ لَهُ: مَا فَعَلَ الْغُلَامَانِ؟ بيائې د حضرت علی ﷜ نه پوښتنه اوکړه. چه په دواړه هلکانو دې څه اوکړل فَقَالَ: بِعْتُ أَحَدَهُمَا، حضرت علی ﷜ عرض اوکړو. چه په دوی کې ما يوخرڅ کړې دې فَقَالَ: أَدْرِكْ أَدْرِكْ نونبي کريم ﷺ اوفرمائيل. چه هغه ته اورسيږه، هغه ته اورسيږه وَيُرْوَى: ارْدُدْ ارْدُدْ}(2) او روايت کولې شی. چه هغه واپس واخله. هغه واپس واخله.

حل اللغة ① الاخوين، تثنيه د اخ، ورور ② صغيرين، تثنيه د صغير، ماشوم، ③ ادرك، رالاندې کړه، ④ اردد، واپس کړه

تشريح:- او دوهم حديث دادې. چه نبي کريم ﷺ په دوې (دوه) نابالغ غلامان کوم چې رونړه وو. حضرت علی ﷜ ته هبه کړل بيا څه ورځې روسته نبي کريم ﷺ پوښتنه اوکړه. چه په هغه غلامانو دې څه اوکړل. حضرت علی ﷜ اوفرمائيل. ای د الله رسوله ﷺ! په دوی کې يو ما خرڅ کړې دې. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل. هغه ته اورسه. يا ئې دا اوفرمائيل. هغه واپس واخله. هغه واپس واخله. حاصل دا چې بيع فسخ کړه. اود دواړو رونړو په مينځ کې تفريق ختم کړه. دا حديث هم د صغيرينو په مينځ کې د تفريق په عدم جواز باندې دلالت کوی. اودا تفريق چونکه د بيع په وجه پيدا شوې دې. ځکه بيع مکروه ده.

وَلِأَنَّ الصَّغِيرَ يَسْتَأْنِسُ بِالصَّغِيرِ وَبِالْكَبِيرِ وَالْكَبِيرُ او ځکه چې يو صغير د بل صغير نه اود کبير نه انس (مينه) حاصلوی

(۱) من حديث أبی أيوب الانصاری ﷜ أخرجه الترمذی فی البيوع باب ۵۲ والسير باب ۱۷ وقال حديث حسن غريب وأخرجه الحاكم فی المستدرك (۵۵/۲)_

(۲) من حديث علی ﷜ أخرجه الترمذی فی البيوع باب ۵۲ رقم ۱۲۸۴ وابن ماجه فی التجارات باب ۴۶ رقم ۲۲۴۹ والدارقطنی فی سننه (۶۶/۳) رقم ۲۵۰ وأبوداود فی الجهاد باب ۱۲۳ رقم ۲۶۹۶)_

**يَتَعَاهَدُهُ** او کبیر د صغیر پرورش (پالنه) کوی **فَكَانَ فِي بَيْعِ أَحَدِهِمَا قَطْعُ الْإِسْتِئْنَاسِ** نو په دوی کي د یو په خرڅولوکي مینه ختمول دی **وَالْمَنْعُ مِنَ التَّعَاهُدِ** او پرورش لري کول لازمیږی **وَفِيهِ تَرْكُ الْمَرْحَمَةِ عَلَى الصِّغَارِ** او په دي کي په ماشومانو باندي رحم پریښول لازمیږی **وَقَدْ أَوْعَدَ عَلَيْهِ** حالانکه داسي سړی ته وعید شوي دي.

حل اللغة:- ① یستانس،مینه حاصلوی، ② الصغیر،ماشوم، ③ الکبیر،لوئي، ④ المرحمة،مهرباني

تشریح:- عقلي دلیل دادي.چه یو ماشوم د بل ماشوم نه اُنس حاصلوی.او ماشوم د بالغ رشته دار نه مانوس کیږی هم.او بالغ ددي ماشوم پالنه(پرورش) هم کوی.نوکه په صغیرینوکي ني یو خرڅ کړلو.نود دواړو په مینځ کي د تفریق په وجه به انس ختم شی.او وحشت به پیدا شی.او په صغیر او کبیر کي که یوخرڅ کړی.نود انس لري کیدلو سره سره به هغه پالنه(پرورش) هم ختم شی.کوم چي د کبیر د اړخه د صغیر په حق کي متوقع وو.اود انس او پرورش زائل کیدلوکي په ماشومانو باندي د شفقت او مهربانئ پریښول لازمیږی.او په ماشومانو باندي د ترحم پریښولو په سلسله کي وعید راغلي دي.لکه چي دمدني آقا ﷺ ارشاد دي. «من لم یرحم صغیرنا ولم یعرف حق کبیرنا فلیس منا» (أبوداؤد) یعنی،، چاچه زموږ په وړو باندي رحم اونکړلو.اوزموږ د لویو حق ني او نه پیژندلو.هغه زموږ د ډلي نه نه دي،، او وعید په ناجائز شي باندي راځی.نو ثابته شوه.چه د صغیرینو په مینځ کي تفریق کول.کوم چي د ترحم پریښولو سبب دي.ناجائز دي.

**ثُمَّ الْمَنْعُ مَعْلُولٌ بِالْقَرَابَةِ** بیا د جدائي کاوه نه ممانعت دداسي قرابت سره معلول دي **الْمُحَرِّمَةِ لِلنِّكَاحِ** چي دا نکاح حراموونکي وی **حَتَّى لَا يَدْخُلَ فِيهِ مَحْرَمٌ غَيْرُ قَرِيبٍ وَلَا قَرِيبٌ غَيْرُ مَحْرَمٍ** تردي چي په دي کي محرم غیرقریب او قریب غیرمحرم نه داخلیږی.

حل اللغة:- ① معلول،په علت سره معلله ده، ② القرابة،خپلولی ③ ،قریب،نزدي، ④ محرم،غټوالي

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرماني.چه د صغیرینو په مینځ کي د تفریق ممانعت معلوم دي.او ددي علت داسي قرابت( رشته داری) دي.کوم چي نکاح همیشه لپاره حراموونکي وی.یعنی په دي دواړوکي یو دبل ذی رحم محرم وی.مثلاً دوي (دوه) حقیقي رونړه یا خویندي.یا موراو خوي.یا پلار اوخوي.یا ماما او خورئي وغیره.اوکه په دي دواړو کي محرمیت وی.خو قرابت نه وی.مثلا رضاعی رنړه وی.یا رضاعی رور خور وی.یا قرابت وی.خو محرمیت نه وی.مثلا د اکا (تره) زوي یا لور وی.یا د ترور خي یا لور وی.نودا به په دي حکم کي داخل نه وی.یعنی د داسي دوي (دوه) نابالغه ماشومانو په مینځ کي تفریق جائز دي.څکه چي علت دممانعت قرابت اومحرمیت ددواړو مجموعه ده.او په ذکر شوی دواړو صورتونوکي په یوکي محرمیت شته.قرابت نشته.او په یو کي قرابت شته.محرمیت نشته.په دي وجه په دي دواړو صورتونوکي د صغیرینو په مینځ کي تفریق ممنوع نه دي.

**وَلَا يَدْخُلُ فِيهِ الزَّوْجَانِ** او په دي حکم کي به ښځه میړه داخل نه وی **حَتَّى جَازَ التَّفْرِيقُ بَيْنَهُمَا** تردي چي ددي دواړو په منځ کي تفریق کول جائز دی.

حل اللغة ① الزوجان،ښځه خاوند ② التفریق،جداوالي راوستل ③ یقتصر،خاص به وی ④ ورد،واقع شوي

تشریح:- او په دي حکم کي به ښځه او میړه هم داخل نه وی.یعنی که ښځه میړه صغیرین وی.اود یوسړی په ملك کي وی.نو مولا په دوی کي یوخرڅ کړی.یا ني هبه کړی.د دواړو په مینځ کي جدائي کولي شی.یعنی دا تفریق جائز دي.

**لِأَنَّ النَّصَّ وَرَدَ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ** څکه چي مذکورحدیث خلاف قیاس واردشوي دي **فَيَقْتَصِرُ عَلَى مَوْرِدِهِ** په دي وجه به دا خپل مورد باندي منحصر وی.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله د ښځي میړه او په تیرشوی دواړو صورتونوکي د تفریق په جواز باندي دلیل بیان کړي دي.فرماني.چه «من فرق بین والدة وولدها» اوحدیث «ادرك ادرك» خلاف قیاس وارد شوی دی.څکه چي د قیاس



تقاضا خودا ده،چه مالك ته هرقسمه د تصرف اختیار وی.که مملوکین صغیرین یوځاني ساتي.اوکه دوی جلا کوی.لکه څنګه چي په مملوکین کبیرین کي ده ته اختیار دي.بهرحال دواړه حدیثونه خلاف قیاس وارد شوی دی.اوکوم نص چي خلاف قیاس واردیږی.هغه په خپل مورد باندي منحصر وی.او دلته کي د رومبي حدیث مورد مور او زوی دي.اود دوهم حدیث مورد رونړه دی.یعنی دواړه حدیثونه په دي باندي دلالت کوی.چه په مملوکین صغیرین کي که قرابت اومحرمیت اوموندي شی.نو ددوی په مینځ کي تفریق کول ممنوع دی.او کوم ځاني چي دا خبره نه وی.هلته په تفریق کولوکي هیڅ باك نشته.

**وَلَا بُدَّ مِنْ اجْتِمَاعِهِمَا فِي مِلْكِهِ** اود دواړو اجتماع دده په ملك کي ضروری ده **لِمَا ذَكَرْنَا** دهغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړي دي **حَتَّى لَوْ كَانَ أَحَدُ الصَّغِيرَيْنِ لَهُ** تردي که احد الصغیرین دده وی **وَالْآخَرُ لِغَيْرِهِ** او دوهم د بل وی **لَا بَأْسَ بِبَيْعِ وَاحِدٍ مِنْهُمَا** نو په دوی کي د یو په خرڅولوکي هیڅ باك نشته.

حل اللغة:- ① لابد،ضروری ده، ② الاجتماع،یوبل سره جمع کیدل، ③ الصغیرین،تثنیه د صغیر ماشوم

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرماني.چه په مملوکین صغیرین کي د یوکس خرڅول هغه وخت مکروه دی.چه کله دواړه مملوك د یوکس په ملك کي وی.لکه چي تیرشوی دواړه حدیثونه په دي باندي شاهد او عادل دی.خو که په صغیرینو یوغلام د یوکس ملك وی.او یود بل کس ملك وی.نو په دوی کي د یو په خرڅولو هیڅ باك نشته.څکه چي په دي صورت کي تفریق نه متحقق کیږی.

**وَلَوْ كَانَ التَّفْرِيقُ بِحَقٍّ مُسْتَحِقٍّ** اوکه تفریق د یو واجب حق په وجه وی **لَا بَأْسَ بِهِ** نو په دي کي هیڅ باك نشته **كَدَفْعِ أَحَدِهِمَا بِالْجِنَايَةِ** مثلاً په دي دواړوکي یود جنایت په وجه سره ورکول **وَبَيْعِهِ بِالدَّيْنِ** او دده په د قرضه په وجه خرڅول **وَرَدِّهِ بِالْعَيْبِ** اودا د عیب په وجه واپس کول.

حل اللغة:- ① التفریق،جداوالي، ② الجنایة،جرم، ③ الدین،قرض، ④ الدفع،ورکول

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرماني.که د څه واجبی حق په وجه د تفریق کاوه اړتیا شی.نو په دي کي هم څه باك نشته.مثلاً د مولا په ملك کي دوي (دوه) نابالغ غلامان وی.او په دوی دواړوکي قرابت محرمه هم وی.بیا په دوی کي یوکس څوك قتل کړی.یا د چا مال هلاك کړی.نود مولا لپاره جائز دی.چه دي دا جنایت (جرم) کونکي غلام هغه کس ته ورکړی.د کوم کس په حق کي چي ني جنایت نفس یا جنایت مال کړي دي.یا مثلاً د یوکس په ملك کي دوي (دوه) غلامان رونړه دی.په دوی کي یو صغیردي .او بل کبیر دي.مولا کبیر ته د اخستلو خرڅولو اجازت ورکړي دي.نو که داغلام،، ماذون له في التجارة،، د خپل قیمت برابر مقروض شو.نو مولا دا مدیون غلام د پور په ادا کاوه کي ورکولي شی.یا مثلا یوکس دوي (دوه) غلامان کوم چي رونړه دی.دوی ني واخستل.د عقدبیع نه روسته په یوکي عیب ښکاره شو.نومشتری د خیارعیب لاندي دا واپس کولي شی. او دوهم غلام خپل ځان سره ساتلي شی.

**لِأَنَّ الْمَنْظُورَ إِلَيْهِ دَفْعُ الضَّرَرِ عَنْ غَيْرِهِ** څکه چي مقصود د بل نه ضرر لري کول دی **لَا الْإِضْرَارُ بِهِ** ده ته ضرر رسول نه دی.

حل اللغة:- ① المنظور،مقصود ② ،الضرر،تکلیف، ③ الاضرار،ضرر رسول، ④ کره،مکروه دي

تشریح:- په دي دري واړه صورتونوکي تفریق کول اګرچه موجود شو.خو بیاهم جائز دی.څکه چي په دي تفریق سره د مولامقصد د خپل ځان نه ضرر لري کول دی.کوم مملوك ته ضرر رسول مقصود نه دی.اود خپل ځان نه د ضرر لري کاوه هرسړی ته اجازت دي.څکه په دي تفریق کي هیڅ باك نشته دي.

## تفریق مکروه دي

**قَالَ فَإِنْ فَرَّقَ** فرماني.نوکه تفريق ئې اوکړو **كُرِهَ لَهُ ذٰلِكَ** نو دا فعل دده په حق کي مکروه دي. **وَجَازَ الْعَقْدُ**[1] او عقدجائز دي.

**تشريح:**- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرماني.که مسلمان مولا د داسې دوې (دوه) نابالغه ماشومانو په مينځ کي تفريق اوکړلو.چه په دوی کي قرابت محرمه موجود دي.نودا تفريق کول د مولا په حق کي مکروه دي.تفريق کول که د بيع په ذريعه وي.اوکه د هبه يا صدقه ياد ميراث يا د مال غنيمت د تقسيمولو په ذريعه وي.اود طرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه د بيع رکن ددې د اهل نه په محل د بيع کي صادرشوې دي.

د تفريق فعل اگرچه بالاجماع مکروه دي.خود بيع په جواز اوعدم جواز کي اختلاف دې. د طرفينو رحمهما الله په نيز عقدبيع جائزدي.هم دا دامام شافعي رحمه الله قول دي.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اود ابويوسف رحمه الله نه روايت دي **أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي قَرَابَةِ الْوِلَادِ** وچې د ولادت په قرابت کي عقد جائز نه دي **وَيَجُوزُ فِي غَيْرِهَا** او ددې ( ولادت قرابت) نه علاوه کي جائز دي.

**تشريح:**- اود حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دي.که دمملوکينو په مينځ کي د ولادت قرابت محرمه وي.( مثلاً مور او ددې په نابالغ بچی کي ،يا پلار او دده په نابالغ بچی کي ) نو ددوی په مينځ کي د تفريق کاوه په صورت کي به عقدبيع جائز نه وي.د امام شافعي رحمه الله اصح قول هم دادې. اوکه ددوی په مينځ کي د ولادت قرابت محرمه نه وي.( مثلاً دوې (دوه) رونړه) نو ددوی په مينځ کي تفريق کاوه سره به بيع جائزوي.ناجائز به نه وي.

**وَعَنْهُ أَنَّهُ** اود ابويوسف رحمه الله نه دا روايت هم نقل دي **لَا يَجُوزُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ** چې په دې ټولو صورتونوکي جائز نه دي.

**تشريح:**- او د امام ابويوسف رحمه الله نه دا هم نقل دی.که د مملوکينو په مينځ کي د ولادت قرابت وي.او که د ولادت قرابت نه وي.په هرصورت بيع اوهغه عقد چې دهغې په ذريعه تفريق شوې وي.ناجائز دي.امام زفر،حسن بن زياد،او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی.

**لِمَا رَوَيْنَا**، د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړې دي **فَإِنَّ الْأَمْرَ بِالْإِدْرَاكِ وَالرَّدِّ لَا يَكُونُ** خکه چې د واپس اخستلو امر به نشی کيدلې **إِلَّا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ**. مگر په بيع فاسد کي .**وَجَازَ الْعَقْدُ** او عقدجائز دي.

**حل اللغة:**- ① الادراک،واپس کيدل.② صددور،واقع کيدل.③ المجاور،نزدې.④ الاستيام،نرخ اچول

**تشريح:**- د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه په حديث د علي رضي الله عنه کوم چې وړاندې تيرشوې دې.په هغې کي دی.چه کله حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل.چه ما په مملوکين صغيرين کي بيوخرڅ کړې دي.نو رسول الله ﷺ «أدرك أدرك» فرمائيلي وو.يا ئې فرمائيلي وو «اردد اردد» مراد دا وو.چه علي دا بيع رد کړه.اودا ښکاره ده.چه د بيع رد کاوه او واپس کاوه حکم په بيع فاسد کي کيږی.په بيع صحيح کي نه کيږی.نو ثابته شوه.چه دا بيع فاسد او ناجائز ده.

**وَلَهُمَا** اود طرفينو رحمهما الله دليل دادې **أَنَّ رُكْنَ الْبَيْعِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ** چې د بيع رکن ددې د اهل نه په محل د بيع کي صادرشوې دي.

**تشريح:**- د طرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه په ذکرشوې بيع کي د بيع رکن يعنی ايجاب او قبول ددې داهل يعنی د عاقل بالغ نه صادر شوی دي.او محل بيع يعنی مملوك اړخ ته منسوب دي.نو هرکله چې په عاقدينوکي د بيع لياقت موجود دي.او په مبيع کي د محل بيع کيدلو صلاحيت موجود دي.نود بيع په صحيح کيدلو،او منعقد کيدلوکي څه اشکال دي.

**وَإِنَّمَا الْكَرَاهَةُ لِمَعْنًى مُجَاوِرٍ** او کراهت صرف د مجاورمعنی په وجه دي **فَشَابَهَ كَرَاهَةَ الِاسْتِيَامِ** نود خپلو د کراهت مشابه شو.

[1] القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كما ظهر من دأب المنصف كذا في القول الراجح (۵۰۱۲)-



**تشريح:**- زيات نه زيات دا وئيلی شي.چه کراهت د معنی مجاور په وجه راغلې دې.اودا معنی مجاور د صغيرين په زړه کي وحشت( يره) پيداکول او شفقت پريښول دی.نودا د ،، سوم علی سوم اخيه،، وغيره مشابه شو.يعنی لکه څنګه چه،، سوم علی سوم اخيه،، د معنی مجاور په وجه مکروه ده.دغه ډول دمملوکين صغيرين په مينځ کي تفريق کاوه په وجه چې کوم د شفقت پريښولو معامله اوشی.ددې په وجه به دا بيع هم مکروه وی.

**په دوې (دوه) لويو غلامانو کښې د تفريق حکم**

**وَإِنْ كَانَا كَبِيرَيْنِ** وکه دواړه بالغ وی **فَلَا بَأْسَ بِالتَّفْرِيقِ بَيْنَهُمَا** نو ددوی دواړو په منځ کي تفريق کولوکي هيڅ باك نشته.

**تشريح:**- مسئله داده.که دوې (دوه) مملوك بالغ وی.او په دواړوکي قرابت محرمه موجود وی.نو ددوی په مينځ کي تفريق کولوکي هيڅ کراهت او قباحت نشته.

**لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى مَا وَرَدَ بِهِ النَّصُّ** خکه چې دا د ،،ماورد به النص،، په معنی کي نه دي.

**تشريح:**- دليل دا دې چې دا په هغه معنی کي نه دی.په کوم کي چې حديث وارد شوې دې.خکه چې د حديث علي رضي الله عنه ورود د صغيرينو په اړه کي شوې دې.او ددې نه وړاندې حديث دمور اوددې د بچی يعنی د صغير اوکبير په اړه کي وارد شوي دې.اودا معلومه شوې ده.چه دواړه حديثونه خلاف قياس وارد شوی دی.او کوم شيان چې خلاف قياس ثابتيږی.هغه خپل مورد سره خاص وی.په هغې باندې بل څه شې قياس کول جائز نه وی.په دې وجه به د صغيرين په مينځ اود صغير اود کبير په مينځ کي تفريق کول به واقعی مکروه وی.خود کبيرينو په مينځ کي تفريق کول به مکروه نه وی.اود صغيرين اود صغير او دکبير په مينځ کي تفريق کولوسره چې کوم ترك شفقت او پرورش پريښول لازميږی.د کبيرينو په مينځ کي تفريق کاوه سره دا الزام هم نه عائد کيږی.خکه چې کبير او او بالغ سړې نه دچا د شفقت محتاج وی.او نه د پرورش محتاج وی.

**وَقَدْ صَحَّ** اودا صحيح ده {**أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فَرَّقَ بَيْنَ مَارِيَةَ وَسِيرِينَ**[1] } چې نبی کريم ﷺ د ماريه او سيرين په منځ کي تفريق کړې وو **وَكَانَتَا أَمَتَيْنِ أُخْتَيْنِ**} حالانکه دا دواړه وينځې خويندې وې.

**حل اللغة:**- ① فرق،جدا والې کړې وو ② امتين،تثنيه د امة وينځه ③ ،الاختين،تثنيه د اخت،خور

**تشريح:**- د کبيرين په مينځ کي د تفريق غيرمکروه کيدلو د ټولو نه مضبوط دليل دادې.چه د اسکندريه بادشان مقوقس، د حاطب بن ابی بلتعه په معرفت دوې (دوه) وينځې د هديه په طور د رسول الله ﷺ په خدمت کي پيش کړې وې.اودا دواړه خويندې وې.په دوی کي يوه د رسول کريم ﷺ د خوی ابراهيم رضي الله عنه مور حضرت ماريه رضي الله عنها وه.او يوه سيرين رضي الله عنها وه.نبی کريم ﷺ سيرين رضي الله عنها د حسان بن ثابت رضي الله عنه لپاره هبه کړې وه.او ماريه رضي الله عنها ئې خپل خان سره ساتلې وه.نو اوګورئ.چه دوې (دوه) بالغو وينځو په مينځ کي رسول اکرم ﷺ تفريق کړې وو.حالانکه دا دواړه خويندې وې.

## باب الاقالة

ژباړه ( دا) باب د اقاله ( په بيان کي ) دي.

**وجه تاخيرالباب عن الباب السابق**● بيع فاسد اوبيع مکروه د معصيت او گناه په وجه واجب الرد دی.او رد د بيع د اقاله په ذريعه سره کيږی.نوخکه ئې د باب بيع الفاسد والمکروه نه روسته باب الاقاله ذکر کړلو.

**تشريح الاقالة**●اقاله د قول نه مشتق دې.او ددې همزه د سلب لپاره ده.معنی به ئې دا وی.چه،، تيرشوې قول زائل کول،،

(۱) من حديث عبدالله بن بريدة عن أبيه رضي الله عنه أخرجه البزار في مسنده وأخرجه البيهقي في دلائل النبوة بسند آخر مرسل وفي الباب أحاديث كذا في نصب الراية(۴/۶۰)_

علامه ابن الهمام او علامه بدرالدین عینی رحمه الله فرمائیلی دی.چه اقاله د قول نه مشتق منل غلط دی.صحیح داده.چه لفظ اقاله د قیل نه مشتق دې.یعنی عین کلمه ئې،، یاء،، ده.واؤ نه ده.او په دې باندې دلیل دادې.چه «قِلت البیع»،، ما بیع ختمه کړه،،.د قاف په کسره سره وئیلې شی.او د قاف کسره د اجوف یائی په صورت کې راځی.د واوی په صورت کې نه راځی.ځکه چې د اجوف واوی په صورت کې فا کلمه مضموم وی.لکه «صمت»،،ماروژه اونیوله،،.د صام یصوم نه راځی.نواقاله د باب افعال مصدر دې.چه ددې معنی د بیع ختمولو راځی.

### د اقاله شرعي حیثیت

الْإِقَالَةُ جَائِزَةٌ فِي الْبَيْعِ بِمِثْلِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ اقاله په بیع کې د ثمن اول د مثل په عوض جائز ده.

**تشریح:-** ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.چه د بیع اقاله د ثمن اول د مثل په عوض جائز ده.د اقاله په جواز باندې د تولو مسلمانانو اجماع ده.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {مَنْ أَقَالَ نَادِمًا بَيْعَتَهُ چې څوك نادم (په بیع باندې خپیمانه) ته دده د بیع اقاله اوکړی أَقَالَ اللَّهُ عَثْرَتَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ}(١) نو الله تعالی به په قیامت کې دده لغزش (خطایانې) لرې کړي.

**حل اللغة:-** ① الاقالة،بیع ماتول، ② الندامة،پښیمانتیا، ③ عثرة،لغزش\ګناه، ④ یوم،ورځ

**تشریح:-** دغه دول د اقاله د جواز لپاره دلیل د رسول الله ﷺ ارشاد دې. «من أقال نادماً بيعته أقال الله عثرته يوم القيامة» یعنی که څوك سړې د بیع کاوه نه روسته پخپل فعل باندې نادم او پښیمانه شی.او ده د اقاله کاوه اراده ښکاره کړله.نوکه دوهم عاقد دده د بیع اقاله اوکړله.یعنی بیع ئې فسخ کړله. نو الله تعالی به ددې عاقد آخر لغزشونه (ګناهونه) د قیامت په ورځ لرې کړی.ګویا په اقاله کاوه باندې د الله تعالی رسول ﷺ د ثواب خبر ورکړي دي.یا ئې د ثواب دعا کړې ده.او دا دواړه په امر مشروع باندې مرتب کیږی.په غیرمشروع باندې نه مرتب کیږی.نو ثابته شوه.چه اقاله مشروع ده.

وَلِأَنَّ الْعَقْدَ حَقُّهُمَا اوځکه چې عقدبیع ددې دواړو حق دې فَيَمْلِكَانِ رَفْعَهُ دَفْعًا لِحَاجَتِهِمَا نو دوی دواړه د خپل اړتیا لرې کاوه لپاره ددې د لرې کاوه اختیار لری.

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه اقاله نوم دې.د عقد ختمولو،او عقد د متعاقدینو حق دې.ځکه چې دا د دواړو په رضامندئ سره منعقد شوی دې.نو هرکله چې عقد د عاقدینو حق دې.اوهم ددوی په رضامندئ سره منعقد شوی دې.نود اړتیا په خیال دې دواړو ددې د فسخ کاوه هم پوره پوره اختیار دې.

### د ثمن اول نه د کموالی زیاتوالي د شرط حکم

فَإِنْ شَرَطَا أَكْثَرَ مِنْهُ أَوْ أَقَلَّ نوکه د ړومبی ثمن نه د زیاتوالی یا کموالی شرط ئې اوکړو فَالشَّرْطُ بَاطِلٌ نو شرط باطل دي وَيَرُدُّ مِثْلَ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ او بائع به د ثمن اول مثل واپس کوی.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که په اقاله کې د ثمن اول نه د زیاتوالی شرط اوکړلو.یائې د کموالی شرط اوکړلو.نوداشرط باطل دې.او په بائع به ثمن اول واپس کول واجب وی.مثلا یوڅیز د زر روپو په عوض خرڅ کړې شو.اوبائع په ثمن باندې او مشتری په مبیع باندې قبضه اوکړله.نواوس که اقاله کول وی.نو په بائع به زر روپۍ واپس کول واجب وی.د زر روپو نه د کموالی یا زیاتوالی شرط لګول به ټیک نه وی.لکه که بائع د دوې (دوه) سوه

(١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في البيوع باب ٥٢ رقم ٣٤٦٠ وابن ماجه في التجارات باب ٢٦ رقم ٢١٩٩ وأحمد في المسند(٢/٢٥٢) والحاكم في المستدرك (٢/٤٥) البيهقي في السنن الكبرى (٦/٤٤) رقم ١١١٢٨)_



روپو کمولوشرط اولګولو.یا مشتری د دوې (دوه) سوه روپو زیاتولو شرط اولګولو .نودا شرط به باطل وی.او په بائع به فقط زر روپۍ واپس کول لازم وی.

وَالْأَصْلُ او اصل دادې أَنَّ الْإِقَالَةَ فَسْخٌ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ چې اقاله د عاقدینو په حق کې فسخ ده.

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اقاله د متعاقدینو په حق کې فسخ د بیع ده.او ددې دواړو نه د علاوه په حق کې بیع جدید ده.د عاقدینو په حق کې د بیع فسخ کاوه فائده داده.چه په بائع باندې فقط د ثمن واپس کول واجب دی.اود ثمن نه د زیاتوالی یا کموالی کوم شرط لګولي وو.هغه باطل دې.

**دلیله** ⊛ که اقاله ددې دواړو په حق کې فسخ نه وه.بلکه بیع وه.نو څه چې دوی متیعن کړی وو.که د ثمن اول نه زیات وو.یاد ثمن اول نه کم وو.هغه به واجب وو.ځکه چې په بیع کې عاقدین کوم ثمن متعین کړی.هم هغه واجب وی.ددې نه علاوه واجب نه وی.نو په اقاله کې په بائع باندې د ثمن اول واجبیدل اود عاقدینو متعین شوې نه واجبیدل ددې خبرې دلیل دې.چه اقاله دعاقدینو په حق کې فسخ د بیع ده.او بیع جدید نه ده.

بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ غَيْرِهِمَا ددې دواړو نه د علاوه په حق کې بیع جدید ده.

**تشریح:-** اقاله دغیر عاقدینو په حق کې بیع جدید ده.ددې فائده به په دې مثال کې ښکاره کیږی.چه یو سړی کور واخستلو.خوشفیع د حق شفعه دعوه اونکړله.خپل حق ئې پرېښولو .بیا عاقدینو اقاله اوکړله.اوکور د بائع په ملك کې راغی.نوهم دغه شفیع که د شفعه مطالبه کول اوغوښتل.نو ده ته دا اختیارشته.یعنی شفیع شفعه طلب کولې شی.ځکه چې د شفیع په حق کې اقاله بیع جدید ده.ګویا مشتری بائع باندې هم هغه کور خرڅ کړې دې.کوم ئې چې دده نه اخستې وو.اود بیع په صورت کې شفیع ته حق شفعه رسیږی.په دې وجه د اقاله په صورت کې هم شفیع ته د حق شفعه طلب کاوه اختیار وی.بهرحال دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اقاله د عاقدینو په حق کې فسخ د بیع،اود غیر عاقدینو په حق کې بیع جدید ده.

إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ جَعْلُهُ فَسْخًا خو که ددې فسخ،فسخ ګرځول ممکن نه وی فَتَبْطُلُ نو اقاله به باطل وی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ(١) دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی.

**تشریح:-** خو که اقاله د بیع فسخ کول ګرځول ممکن نه وی.نو اقاله به باطل وی.مثلاً یوسړی وینځه خرڅه کړله.او مشتری په دې باندې قبضه اوکړله.بیا ددې وینځې بچې پیدا شو.اوس که ددې عاقدین اقاله کول اوغواړی.نو ټیك نه ده.ځکه چې اقاله دعاقدینو په حق فسخ د بیع ده.او په مبیع کې داسې زیاتوالې کوم چې د مبیع نه جلا وی.فسخ د بیع منع کوی.نو منفصله زیاتوالې یعنی بچې د شریعت په حق کې د بیع فسخ کاوه لپاره مانع دې.او هرکله چې د بچی په وجه فسخ د بیع ممکن نشوه.نو اقاله به باطل وی.او مخکینۍ بیع به پخپل حال باندې پاته وی.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ هُوَ بَيْعٌ د ابویوسف رحمه الله په نیز اقاله بیع ده إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ جَعْلُهُ بَيْعًا خوکه ددې بیع ګرځول ممکن نه وی فَيُجْعَلُ فَسْخًا نو فسخ به ګرځولې شی إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ فَتَبْطُلُ خوکه فسخ ګرځول ممکن نه وی فیبطل .نو اقاله به باطل وی.

**تشریح:-** د امام ابویوسف رحمه الله په نیز اقاله بیع ده.خوکه دا بیع ګرځول ممکن نه وی.نو فسخ به ګڼړلې شی.اوکه فسخ ګرځول ممکن نه وی.نو اقاله به باطل وی.مثلاً یوکس د زر روپو په عوض غلام واخستلو.مشتری په غلام باندې قبضه اوکړله.او بیا دواړو اقاله اوکړله.نودا اقاله د بیع ده.یعنی مشتری په بائع باندې هم هغه غلام (کوم ئې چې اخستې وو) د زر روپو په عوض خرڅ کړلو.اوکه مشتری په غلام باندې د قبضه کاوه نه وړاندې اقاله اوکړله.نو

(١) القول الراجح هو هذا قول الإمام رحمه الله كذا في وردالمحتار(١٤\١٦٤) والهندية (١٣\١٥٦) نقلاً عن القول الراجح (١٢\٥٠)-

اقاله بيع ګرځول ممکن نه دی.ځکه چې په منقول شئ باندې د قبضه کاوه نه وړاندې ددې خرڅول جائز نه دی.اوکه يوکس غلام د زر روپو په عوض واخستلو.او په غلام باندې قبضه کاوه نه وړاندې ئې په لس منه غنمو باندې اقاله اوکړله.نودا اقاله بيع ګرځول په دې وجه ممکن نه دی.چه مشتری په غلام د قبضه کاوه نه بغير اقاله کړې ده.او فسخ د بيع ګرځول ځکه ممکن نه دی.چه فسخ د بيع د ثمن اول په عوض کيږی.او دلته کې دواړو لس منه غنم ثمن جوړ کړی دی.حالانکه د ثمن اول د جنس نه په خلاف باندې فسخ د بيع نه کيږی.نوهرکله چې نه بيع ګرځول ممکن دی.او نه فسخ ګرځول ممکن دی.نو په دې صورت کې به دسره اقاله باطل وی.او هرکله چې اقاله باطل شوه..نوعقد اول به پخپل حال باندې پاته وی.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ هُوَ فَسْخٌ** اود امام محمد رحمه الله په نيز اقاله فسخ ده **إِلَّا إِذَا تَعَذَّرَ جَعْلُهُ فَسْخًا** خو کله چې ددې فسخ ګرځول متعذر وی **فَيُجْعَلُ بَيْعًا** نو بيع به ګرځولې شی **إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ** خو که بيع ګرځول ممکن نه وی **فَيَبْطُلُ** نو اقاله به باطل وی.

**تشريح:-** دامام محمد رحمه الله په نيز اقاله فسخ د بيع ده.که فسخ ګرځول ممکن نه وی.نودا به بيع ګرځولې شی.اوکه بيع ګرځول هم ممکن نه وی.نو اقاله به باطل وی.مثلاً يوسړی يوه وينځه د زر روپو په عوض واخستله.او په وينځه ئې قبضه اوکړله.بيا ئې په زر روپو باندې اقاله اوکړله.نودا اقال به فسخ دبيع وی.او که ددې وينځې بچې پيدا شو.نو دا به فسخ کول ممکن نه وی.ځکه چې منفصله زياتوالې فسخ د بيع منع کوی.نو هرکله چې په دې صورت کې فسخ د بيع ممکن نه ده.نودا به بيع ګرځولې شی.يعنی دا به وئيلې شی.چه مشتری وينځه او بچې دواړه د زر روپو په عوض په بائع باندې خرڅ کړی دی.اوکه يوکس دزر روپو په عوض وينځه واخستله.او مشتری د قبضه کاوه نه بغير په لس منه غنمو باندې اقاله اوکړله.نودا اقاله نه فسخ د بيع کيدلې شی.او نه بيع کيدلې شی.فسخ د بيع ځکه نشی کيدلې.چه فسخ په ثمن اول باندې کيږی.د ثمن اول د جنس نه په خلاف باندې نه کيږی.حالانکه دلته کې د ثمن اول د جنس په خلاف باندې اقاله شوې ده.او بيع ځکه نشی کيدلې.چه د قبضه کاوه نه وړاندې بيع جائز نه وی.حالانکه دلته کې مشتری په مبيع يعنی په وينځه باندې د قبضه کاوه نه بغير اقاله کړې ده.نو هرکله چې نه فسخ ممکن ده.او نه بيع ممکن ده.نواقاله به باطل وی.او هرکله چې اقاله باطل ده.نو عقد اول به پخپل حال باندې پاته وی.

**لِمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ** د امام محمد رحمه الله دليل دادې **أَنَّ اللَّفْظَ لِلْفَسْخِ وَالرَّفْعِ.** چې لفظ اقاله په لغت کې فسخ اود لرې کاوه په معنی کې راځی **وَمِنْهُ يُقَالُ:** هم ددې نه وئيلې شی، **أَقِلْنِي عَثَرَاتِي** زما لغزش (خطايانې) معاف کړې **فَتُوَفَّرُ عَلَيْهِ قَضِيَّتُهُ.** نو لفظ اقاله ته به دا معنی پوره ورکولې شی.کوم چې لغت مقتضی ده **وَإِذَا تَعَذَّرَ** او کله چې دا معنی متعذر وی **يُحْمَلُ عَلَى مُحْتَمَلِهِ وَهُوَ الْبَيْعُ** نو اقاله به پخپل محتمل معنی يعنی بيع باندې به محمول کولای شی **أَلَا تَرَى أَنَّهُ بَيْعٌ فِي حَقِّ الثَّالِثِ** آيا نه ګورې.چه اقاله د دريم په حق کې بيع جديد ده.

**حل اللغة:-** ① **اقل**،معاف نې کړه، ② **عثرة**،ګناه، ③ **التوفر**،پوره کيدل، ④ **القضية**،مقتضی

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه د اقاله لغوی معنی د فسخ کاوه اود لرې کاوه ده.لکه چې د دعا په موقع باندې وئيلې شی. «**اقلنی عثرتی**» زما لغزش (خطاء) لرې کړې.اود اصول فقه په کتابونو کې ليکلی دی.چه ترکومه پورې په حقيقت باندې عمل کول ممکن وی.نو مجاز اړخ ته رجوع نشی کيدلې.په دې وجه اقاله پخپله حقيقی معنی باندې محمول کولې شی.او وئيلې به شی.چه اقاله فسخ د بيع ده.او هرکله چې حقيقی معنی په فسخ باندې محمول کول متعذر وی.نو ددې محتمل معنی باندې به محمول کولې شی.اود اقاله محتمل معنی بيع ده.اواقاله د غيرعاقدينو په حق کې بيع شمارلې کيږی.نو هرکله چې لفظ د اقاله د بيع احتمال لری.نود معنی حقيقی متعذر کيدلو په صورت کې به اقاله په بيع باندې محمول کولې شی.



**وَلِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او د ابويوسف رحمه الله دليل دادې **أَنَّهُ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ بِالتَّرَاضِي.** چې اقاله خپل منځ کې په رضامندئ سره مال د مال په عوض بدلول دی **وَهَذَا هُوَ حَدُّ الْبَيْعِ** او هم دا د بيع تعريف دې **وَلِهَذَا يَبْطُلُ بِهَلَاكِ السِّلْعَةِ** هم په دې وجه د مبيع هلاکيدلو سره اقاله باطليږی **وَيُرَدُّ بِالْعَيْبِ** او د عيب په وجه مبيع واپس کولای شی **وَتَثْبُتُ بِهِ الشُّفْعَةُ** او د اقاله په وجه حق شفعه ثابتيږی **وَهَذِهِ أَحْكَامُ الْبَيْعِ** حالانکه دا واړه د بيع احکام دی.

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه اقاله پخپل مينځ کې په رضامندئ سره مال په مال سره د بدلولو نوم دې.ځکه چې په اقاله کې مشتری مبيع واپس کوی.او خپل ورکړې شوې ثمن واپس اخلی.اوهم دا د بيع تعريف دې.نود معنی په اعتبارسره به اقاله باطل شی.لکه څنګه چې په عقدبيع کې د مبيع سپارلو نه وړاندې که مبيع بائع سره هلاک شی.نو بيع باطليږی.اود مشتری په قبضه کې که په مبيع کې څه عيب پيدا شو.نود اقاله په صورت کې بائع د عيب په وجه مبيع مشتری ته واپس کولې شی.لکه څنګه چې په عقدبيع کې مشتری د عيب په وجه مبيع بائع اړخ ته واپس کولې شی.او لکه څنګه چې په عقدبيع کې شفيع ته حق شفعه حاصليږی.دغه ډول د اقاله په صورت کې شفيع لپاره حق شفعه ثابتيږی.نوهرکله چې لفظ د اقاله د بيع په معنی باندې هم مشتمل ده.اود اقاله لپاره د بيع احکام هم ثابت دی.نو اقاله کول په حقيقت کې بيع کول شو.په دې وجه اووئيلی شو.چه اقاله بيع ده.او هرکله چې بيع متعذر شی.نود عاقدينو کلام د لغو کيدلو نه د بچ کاوه لپاره به اقاله په فسخ باندې محمول کولې شی.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او د ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې **أَنَّ اللَّفْظَ يُنْبِئُ عَنِ الرَّفْعِ وَالْفَسْخِ** چې لفظ اقاله د فسخ او رفع (ختمولو) خبر ورکوی **كَمَا قُلْنَا** لکه چې موږ اووئيل **وَالْأَصْلُ إِعْمَالُ الْأَلْفَاظِ فِي مُقْتَضَيَاتِهَا الْحَقِيقِيَّةِ** او اصل دادې.چه الفاظو ته ددې په حقيقی معنی کې عمل ورکړې شی.

**حل اللغة:-** ① **الاعمال**،عمل ورکول، ② **الابتداء**،اولنې، ③ **تعين**،متعين شو، ④ **يحمل**،حمل کولې شی

**تشريح:-** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د اقاله لغوی معنی فسخ کول او لرې کول دی.لکه څنګه چې دامام محمد رحمه الله په دليل کې تير شوی دی.او اصل دادې.چه الفاظ پخپله حقيقی معنی کې استعمال کړې شی.اوکه په حقيقی معنی کې استعمالول متعذرشی.نومجاز اړخ ته رجوع کولې شی.په دې شرط چې مجازی معنی مراد اخستل ممکن وی.نو ددې اصل مطابق به اقاله فسخ وی.خود فسخ متعذر کيدلو په صورت کې به اقاله بيع نشی ګڼړلې.

**وَلَا يَحْتَمِلُ ابْتِدَاءً** او لفظ د اقاله دابتدائې عقد احتمال نه لری **الْعَقْدِ لِيُحْمَلَ عَلَيْهِ عِنْدَ تَعَذُّرِهِ** چې دفسخ متعذر کيدلو په وخت ابتدائې عقد باندې محمول کړې شی. **لِأَنَّهُ ضِدُّهُ** ځکه چې عقدبيع د فسخ بيع ضد دې **وَاللَّفْظُ لَا يَحْتَمِلُ ضِدَّهُ** او لفظ د خپل ضد احتمال نه لری **فَتَعَيَّنَ الْبُطْلَانُ** په دې وجه باطليدل متعين شو.

**تشريح:-** دليل دا دی چې اقاله زوال د ملک لپاره موضوع ده.او بيع اثبات د ملک لپاره موضوع ده.او لفظ د خپل معنی د ضد احتمال نه لری.نو هرکله چې لفظ د اقاله د ابتداء بيع احتمال نه لری.نود فسخ متعذر کيدلو په صورت کې به لفظ د اقاله په ابتداء دبيع باندې نشی محمول کولې.او هرکله چې لفظ د اقاله په بيع باندې نشی محمول کولې.او فسخ متعذر ده.نود اقاله باطلول متعين شو.

**وَكَوْنُهُ بَيْعًا فِي حَقِّ الثَّالِثِ أَمْرٌ ضَرُورِيٌّ** او اقاله د دريم کس په حق کې بيع کيدل يو ضروری امر دې **لِأَنَّهُ يَثْبُتُ بِهِ مِثْلُ حُكْمِ الْبَيْعِ وَهُوَ الْمِلْكُ** ځکه چې د اقاله نه د حکم بيع مثل يعنی ملکيت ثابتيږی **لَا مُقْتَضَى الصِّيغَةِ** نه د اقاله د صيغې مقتضی دا بيع ده **إِذْ لَا وِلَايَةَ لَهُمَا عَلَى غَيْرِهِمَا** ځکه چې د بائع او مشتری ولايت په غير باندې نه دی.

**تشریح:-** دا عبارت د یو اعتراض خواب دی.اعتراض دادی.چه اقاله د غیرعاقدینو په حق کي بیع ده.که په اقاله کي د بیع احتمال نه وو.لکه څنګه چي تاسو وئیلی دی.نواقاله د دریم سړی یعنی د شفیع په حق کي هم بیع کیدل پکار نه وو.حالانکه اقاله د دریم سړی په حق کي دامام صاحب رحمه الله په نیز بیع ده.

**الجواب:-** ددی خواب دادی.چه د غیرعاقدینو په حق کي د اقاله بیع کیدل ضرورةً ثابت دی.داسي نه ده.چه د لفظ اقاله مقتضاء بیع ده.تفصیل دادی.چه د بیع مقصود ملك ثابتول دی.اود ملك زائل کیدل ددي د لوازماتو څني دی.یعني هرکله چي د مشتري لپاره د بیع ملك ثابت شي.نو لازمي طور به د مبیع نه د بائع ملك زائل شي.او هرکله چي د بائع لپاره د ثمن ملك ثابت کړي شي.نو لازما به دمشتري ملك د ثمن زائل شي.او اقاله موضوع ده.د زوال ملك او ابطال ملك دپاره.یعني د مبیع نه د مشتري ملك اود ثمن نه د بائع ملك زائل کاوه لپاره اقاله وضع کړي شوي ده.خو ثبوت د ملك ددي د لوازماتو څني دی.یعني هرکله چي د مبیع نه د مشتري ملك زائل شي.نو لامحاله (خامخا) به بائع لپاره ثابت شي.اوهرکله چي د ثمن نه د بائع د ملك زائل شو.نو خامخا به د مشتري لپاره ثابت شي.

### په ثمن اول باندې د زیاتوالی شرط

> **إِذَا ثَبَتَ هٰذَا** هرکله چي دا ثابته شوه **نَقُوْلُ**:نو مونږ وایو **إِذَا شَرَطَ الْأَكْثَرَ** چي هرکله ئې د ثمن اول نه د زیات شرط اوکړو **فَالْإِقَالَةُ عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ** نو اقاله به په ثمن اول باندې (واقع وی)

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه هرکله دا اصل ثابت شو.چه د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اقاله د بیع د فسخ نوم دی.اوکه فسخ کول ګرځول ممکن نه وي.نو اقاله به باطل وی.نو ددې قاعدې په رڼاکي مونږ وایو.چه هرکله ئې د ثمن اول نه د زیات شرط اولګولو.مثلاً ثمن اول زر روپۍ دی.خو بائع او مشتري اقاله په پنځلس سوه روپۍ باندې اوکړله.یعني مشتري دا شرط اولګولو.چه بائع به د زر روپو په ځائې پنځلس سوه روپۍ واپس کوی.او بائع دا منظور کړلو.نو اقاله به زر روپو په عوض صحیح وی.اود پاته پنځ سوه روپو ذکر به لغو وی.

> **لِتَعَذُّرِ الْفَسْخِ عَلَى الزِّيَادَةِ**،ځکه چي فسخ په زیاتوالی متعذر ده **إِذْ رَفْعُ مَا لَمْ يَكُنْ ثَابِتًا** ځکه چي کوم شئ ثابت نه وو **مُحَالٌ** د هغې لرې کول محال دی **فَيَبْطُلُ الشَّرْطُ**، نو شرط به باطل وی **لِأَنَّ الْإِقَالَةَ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ** ځکه چي اقاله په شروط باطله سره نه باطلیږی.

**حل اللغة:-** ① **الزيادة**،زیادت، ② **الرفع**،پورته کیدل، ③ **الاثبات**،ثابتول، ④ **يتحقق**،ثابتیږی

**تشریح:-** دلیل دادی.چه د ثمن اول نه په زیاتی باندې بیع فسخ کول ناممکن دی.ځکه چه،، فسخ بیع،، د بیع لرې کاوه نوم دی.په کوم وصف باندې چي دا د مخکي نه وو.او د ثمن اول نه په زیاتی باندې فسخ کول داسې نه دی.ځکه چي د ثمن اول نه په زیاتی باندې فسخ کولوکي د هغه شئ لرې کول لازمیږی.کوم چي ثابت نه وو.یعني پنځلس سوه روپو باندې د فسخ کاوه په صورت کي پنځه سوه روپۍ کومې چي په عقدبیع کي ثابت نه وی.د هغې لرې کول لازمیږی.او کوم شئ چي ثابت نه وی.د هغې لرې کول محال وی.ځکه د ثمن اول نه د زیاتی شرط لګول به باطل وی.خو اقاله به باطل نه وی.ځکه چي اقاله په شروط فاسده سره نه باطلیږی.ځکه چي د زیاتوالی شرط د ربوا مشابه شو.او اقاله د معنی په اعتبارسره د بیع مشابه ده.نو په اقاله کي شرط فاسد شبیه الشبهه شو.او وړاندې تیرشوی دی.چه شبهة الربوا موثر نه وی.ځکه به په دې شرط سره اقاله ټیك وی.خودا شرط به پخپله باطل وی.

> **بِخِلَافِ الْبَيْعِ**، په خلاف د بیع **لِأَنَّ الزِّيَادَةَ يُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا فِي الْعَقْدِ** ځکه چي په بیع کي ثمن زیاتول ممکن دی **فَيَتَحَقَّقُ الرِّبَا** نو ربوا به متحقق کیږی **أَوْ لَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا فِي الرَّفْعِ** خو په عقدبیع لرې کولوکي د زیاتوالی اثبات ممکن نه دی.

**تشریح:-** په خلاف د بیع، یعنی فسخ خو په زیاتوالی باندې متعذر ده.خو بیع په زیاتوالی باندې متعذر نه ده.مثلاً یوکس یو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ کړلو.نودا بیع د زیاتی درهم په ثابتوالی سره باطل ده.اودا نشی



وئیلې کیدلې.چه یو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ کړلو.او زیاتی درهم باطل شو.ځکه چي په بیع کي زیاتی درهم ثابتول ممکن دی.او هرکله چي د زیاتی درهم ثابتول ممکن دی.نو ربوا متحقق شوه.اود ربوا په وجه بیع باطلیږی.ځکه د زیاتی درهم په وجه به بیع باطل وی.خو په اقاله کي د زیاتوالی ثابتول ممکن نه دی.ځکه چي اقاله نوم دې د ثابت شوی شئ لرې کولو.او کوم زیاتوالی چي په بیع کي ثابت نه وو.د هغې لرې کول محال دی.په دې وجه به په اقاله کي د زیاتوالی شرط باطل وی.خو اقاله به باطل نه وی.

> **وَكَذَا إِذَا شَرَطَ الْأَقَلَّ** اوهم دغه ډول که د کموالی شرط ئې اوکړو **لِمَا بَيَّنَّاهُ** د هغه دلیل په وجه کوم چي مونږ بیان کړې دې.

**تشریح:-** دغه ډول که د ثمن اول نه ئې د کموالی شرط اولګولو.مثلاً ثمن اول زر روپۍ دی.اود اقاله کاوه په وخت بائع اووئیل.چه زه به اته سوه روپۍ واپس کوم.نودا شرط به باطل وی.او په ثمن اول یعنی په زر روپۍ به اقاله ټیك وی.ځکه چي غیرثابت شوې شئ لرې کول محال دی.او په بیع کي نقصان یعنی د ثمن اول نه د کموالی شرط هم ثابت نه وو.نود اقاله په ذریعه به دا لرې کول محال وی.او هرکله چي دا محال دی.نو شرط باطل او اقاله به صحیح وی.

> **إِلَّا أَنْ يَحْدُثَ فِي الْمَبِيعِ عَيْبٌ** مګر داچه په مبیع کي څه عیب پیداشی **فَحِينَئِذٍ جَازَتِ الْإِقَالَةُ بِالْأَقَلِّ** نو دغه وخت اقاله په کم باندې هم جائز ده **لِأَنَّ الْحَطَّ يُجْعَلُ بِإِزَاءِ** ځکه چي په ثمن کي کموالې به د هغه شئ مقابل ګرځولې شی **مَا فَاتَ بِالْعَيْبِ** کوم چي د عیب په وجه فوت شوې دې.

**حل اللغة:-** ① **يحدث**،نوې پیدا شی ② **الاقل**،کم ③ **الحط**،کمول ④ **الازاء**،مقابله

**تشریح:-** خوکه د مشتري په قبضه کي په مبیع کي څه عیب پیدا شو.نو په داسې صورت کي د ثمن اول نه په کم باندې هم اقاله جائز ده.ځکه چي د ثمن اول نه کوم مقدار کم شوې دې.مثلاً دوې (دوه) سوه روپۍ، نودا دوې (دوه) سوه روپۍ به د مبیع د هغه جزء مقابل ګڼړلې شی.کوم جزء چي د مشتري د قبضه نه فوت شوې دې.یعنی د عیب په وجه چي د مبیع کوم جزء مشتري سره پاتې شوې دې.بائع د هغې په مقابله کي د ثمن یو مقدار یعنی دوې (دوه) سوه روپۍ ګیرې کړلې.او په دې کي څه باك نشته.

د امام صاحب د مذهب حاصل دا شو.که یو غلام ئې په زر روپۍ واخستلو.او په زر روپۍ باندې ئې اقاله اوکړله.نو اقاله ټیك ده.او که په پنځلس سوه روپۍ باندې ئې اقاله اوکړله.نو په زر روپۍ باندې اقاله صحیح ده.اود پنځه سوه روپو شرط باطل دې.اوکه په نهه سوه روپو ئې اقاله اوکړله.او په بیع کي دننه څه عیب هم پیدا نشو.نو اقاله په زر روپو باندې صحیح ده.اود نقصان شرط باطل دې.او که په مبیع کي څه عیب پیدا شو.نو په داسې صورت کي مشروط مقدار یعنی په اته سوه روپۍ به هم اقاله صحیح وی.

> **وَعِنْدَهُمَا فِي شَرْطِ الزِّيَادَةِ يَكُوْنُ بَيْعًا** اود صاحبینو رحمهما الله په نیز د زیاتوالی په شرط کاوه کي اقاله بیع وی.

**تشریح:-** د صاحبینو رحمهما الله په نیز که په اقاله کي ئې د ثمن نه اول نه د زیاتوالی شرط اولګولو.مثلاً ثمن اول زر روپۍ وو.اوشرط ئې دا اولګولو.چه بائع به پنځلس سوه روپۍ واپس کوی.نودا به اقاله د بیع وی.اودا به وئیلې شی.چه مشتري کوم مبیع په زر روپۍ اخستې وو.بائع باندې ئې په پنځلس سوه روپۍ باندې خرڅ کړې دې.

> **لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** ځکه چي د ابویوسف رحمه الله په نیز د اقاله بیع کیدل اصل دی **وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ جَعْلُهُ بَيْعًا مُمْكِنٌ** او د امام محمد رحمه الله په نیز ددې بیع ګرځول ممکن دی **فَإِذَا زَادَ كَانَ قَاصِدًا بِهٰذَا** نو هرکله چي په ثمن اول باندې ئې دزیاتوالی شرط اوکړو **اِبْتِدَاءَ الْبَيْعِ** نو ددې څخه به بیع مقصود وی.

**تشریح:-** دلیل دادې.چه دحضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیز د اقاله بیع کیدل اصل دی.اود امام محمد رحمه الله په نیز اصل اقاله فسخ کیدل دی.خو چونکه د زیاتوالی په شرط باندې فسخ متعذر ده.او اقاله که فسخ ګرځول ممکن نه وی.نودا بیع ګرځ[illegible] ځکه به ددوی په نیز دا اقاله د بیع وی.نوچه کله ئې په ثمن اول باندې د زیاتوالی شرط

اولګولو.نو چونکه په حقیقت یعنی په فسخ باندې عمل متعذرشو.په دې وجه د عاقلانو کلام د لغو کیدلو نه د بچ کاوه لپاره مجاز یعنی بیع ارخ ته به رجوع کولې شي.اودا به وئلې شي.چه په دې کلام سره د عاقدینو مقصد بیع کول دي.د بیع فسخ کول نه دي.

وَكَذَا فِي شَرْطِ الْأَقَلِّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ، اوهم دغه ډول د ثمن اول نه د کموالي په شرط کولوکې د ابویوسف رحمه الله په نیز لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ عِنْدَهُ خکه چې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د اقاله بیع کیدل اصل دی.

تشریح:- اوکه د ثمن اول نه د کموالي شرط ئې اولګولو.مثلاً بائع اووئیل.چه د زر روپو په ځائې به اته سوه روپۍ واپس کوم.او مشتري دا منظور کړله.نود حضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیز اقاله بیع کیدل اصل دی.اود امام محمد رحمه الله په نیز دا اقاله په ثمن اول باندې فسخ ده.یعنی په بائع باندې به ثمن اول یعنی زر روپۍ واپس کول واجب وي.اود کموالي شرط لګول به باطل وي.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ هُوَ فَسْخٌ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ اود امام محمد رحمه الله په نیز دا په ثمن اول باندې فسخ ده لِأَسُكُوتٌ عَنْ بَعْضِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ، خکه چې په دې کې د ثمن اول د بعض نه سکوت دی. وَلَوْسَكَتَ عَنِ الْكُلِّ وَأَقَالَ اوکه د پوره ثمن نه سکوت کړې وي.او اقاله ئې کړې وه يَكُونُ فَسْخًا نو (دا به) فسخ وه فَهٰذَا أَوْلٰى،نود ثمن اول د بعض نه سکوت کول به په درجه اولی فسخ وي بِخِلَافِ مَا إِذَا زَادَ په خلاف ددې کله چې په ثمن اول کې د زیاتوالي شرط کړې وي.

تشریح:- د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه هرکله بائع دا اووئیل.چه زه به اته سوه روپۍ واپس کوم.نوده د ثمن اول د یوې برخې (حصې) نه سکوت (خاموشي) اختیار کړلو.اوکه ده د پوره ثمن ذکر کاوه نه سکوت کړې وو.او اقال ئې کړې وه.نودا به په پوره ثمن باندې فسخ وه.نو کله ئې چې د ثمن اول د یوې برخې (حصې) نه سکوت اختیار کړلو.نودا اقاله به په درجه اولی فسخ وي.حاصل دا چې د ثمن اول نه په کم باندې د اقاله کاوه په صورت کې فسخ چونکه ممکن ده.خکه د امام محمد رحمه الله په نیز په دې صورت کې به اقاله فسخ وي.اود ثمن اول نه په زیاتوالي باندې د اقاله کاوه په صورت کې چونکه فسخ ممکن نه ده.په دې وجه په دې صورت کې د امام محمد رحمه الله په نیز اقاله بیع وي.

وَإِذَا دَخَلَهُ عَيْبٌ اوکه په مبیع کې څه عیب (مشتري سره) پیدا شوې وي. فَهُوَ فَسْخٌ بِالْأَقَلِّ نود ثمن اول نه په کم باندې اقاله کول فسخ ده لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.که د مشتري په قبضه کې په مبیع کې څه عیب پیدا شو.نود ثمن اول نه په کم باندې به اقاله فسخ وي.یعنی مشروط مقدار،یعنی اته سوه روپۍ به په بائع باندې واجب وي.زر روپۍ یعنی پوره ثمن اول واپس کول به واجب نه وي.ددې دلیل وړاندې تیرشوې دې.

## د ثمن اول د جنس نه علاوه سره د اقاله حکم

وَلَوْ أَقَالَ بِغَيْرِ جِنْسِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ اوکه د ثمن اول نه علاوه ئې په بل جنس باندې اقاله اوکړله فَهُوَ فَسْخٌ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا په ثمن اول باندې فسخ وي وَيُجْعَلُ التَّسْمِيَةُ لَغْوًا. اود ثمن اول د جنس نه د علاوه ذکر به لغو ګرځولې شي.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که د ثمن اول نه علاوه په بل څه جنس ئې اقاله اوکړله.مثلاً ثمن اول دراهم وو.او اقاله ئې په دنانیر اوکړله.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا اقاله په ثمن اول یعنی په دراهم به فسخ د بیع وي.اود دنانیر ذکر به لغو وي.په بائع به ثمن اول یعنی دراهم واپس کول واجب وي.او دنانیر واپس کول به واجب نه وي.او اقاله به فسخ د بیع وي.

عِنْدَهُمَا بَيْعٌ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به دا اقاله بیع وي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو.



تشریح:- اود صاحبینو رحمهما الله په نیز دا اقاله د ثمن اول نه سوا په بل جنس باندې بیع وي.یعنی دا به وئیلې شي.چه مشتري هغه مبیع کوم ئې چې د بائع نه د دراهمو په عوض اخستې وو.د دنانیرو په عوض ئې خرڅ کړې دې.د دوارو دلیلونه وړاندې تیرشوي دي.یعنی د امام ابویوسف رحمه الله په نیز اقاله بیع کیدل اصل دی.خکه ددوي په نیز به دا اقاله د بیع وي.اود امام محمد رحمه الله په نیز اصل خودادې.چه اقاله فسخ وي.خوچه کله د ثمن اول نه سوا بل جنس ذکر کاوه په وجه فسخ متعذر شوه.نودا به بیع ګرځولې شي.خکه چې دا بیع ګرځول ممکن دي.اود امام محمد رحمه الله اصول هم دادې.چه کله اقاله فسخ ګرځول ممکن نه وي.نودا به بیع ګرځولې شي.

وَلَوْ وَلَدَتِ الْمَبِيعَةُ وَلَدًا اوکه مبیعه وینځې بچې راوړو ثُمَّ تَقَايَلَا فَالْإِقَالَةُ بَاطِلَةٌ عِنْدَهُ بیا دواړ اقاله اوکړله.نود امام صاحب رحمه الله په نیز اقاله باطل ده لِأَنَّ الْوَلَدَ مَانِعٌ مِنَ الْفَسْخِ خکه چې بچې د فسخ مانع دې.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.که د مبیعه وینځې د مشتري د قبضه کاوه نه روسته بچې پیدا شو.بیا عاقدینو اقاله اوکړله.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا اقاله باطل ده.دلیل دادې.چه د امام صاحب رحمه الله په نیز اقاله فقط فسخ وي.د قبضه کاوه نه روسته داسې زیاتوالي پیدا کیدل کوم چې د مبیع نه جلا وي.مانع د فسخ وي.او بچې هم منفصله زیاتوالي دې.نودا به هم د فسخ لپاره مانع وي.او هرکله چې دمنفصله زیاتوالي په وجه فسخ ممنوع ده.نو اقاله به باطل وي.او بیع اول به پخپل حال باندې پاته وي.خوکه د مبیعه وینځې د مشتري د قبضه کاوه نه وړاندې بچې پیدا شو.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به اقاله صحیح وي.خکه چې منفصله زیاتوالي قبضه کاوه سره مانع د فسخ نه وي.او که په دې باندې وازګه پیدا شوه.نودا زیاتوالي نه د قبضه نه وړاندې مانع د فسخ دي.اونه د قبضه نه روسته د فسخ مانع دي.

وَعِنْدَهُمَا تَكُونُ بَيْعًا اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به بیع وي.

تشریح:- او صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه د مبیعه وینځې د بچې پیدا کیدلو نه روسته ئې که اقاله اوکړله.نودا اقاله به بیع وي.خکه چې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز اقاله بیع کیدل اصل دی.اود امام محمد رحمه الله په نیزخکه چې کله د منفصله زیاتوالي په وجه فسخ ممکن پاتې نشوه.نو اقاله به بیع ګرځولې شي.خکه چې بیع ګرځول ممکن دی.اوهم دا د امام محمد رحمه الله اصول دی.که فسخ ممکن نه وي.نو اقال به بیع ګرځولې شي.

وَالْإِقَالَةُ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْمَنْقُولِ، وَغَيْرِهِ فَسْخٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او په منقول کې د قبضه کاوه نه وړاندې اقاله د طرفینو رحمهما الله په نیز فسخ ده كَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْمَنْقُولِ اوهم دغه ډول د ابویوسف رحمه الله په نیز منقول کې (فسخ ده) لِتَعَذُّرِ الْبَيْعِ، خکه چې بیع متعذر ده وَفِي الْعَقَارِ يَكُونُ بَيْعًا عِنْدَهُ او په غیرمنقول کې د ابویوسف رحمه الله په نیز اقاله بیع ده. لِإِمْكَانِ الْبَيْعِ، خکه چې بیع ممکن ده فَإِنَّ بَيْعَ الْعَقَارِ قَبْلَ الْقَبْضِ جَائِزٌ عِنْدَهُ خکه چې د ابویوسف رحمه الله په نیز د قبضه نه وړاندې د غیرمنقول بیع جائز ده.

حل اللغة:- ① العقار،مځکه ، ② المنقول،کوم شئ چې د خپل ځائې نقل کیدای شي ③ ، قبل، وړاندې، ④ القبض،وصولي

تشریح:- د علامه مرغیناني رحمه الله ددې عبارت حل کاوه نه وړاندې دا خبره په ذهن کې کینوئ.چه د اشیاء منقوله بیع د قبضه کولونه وړاندې بالاجماع جائز نه ده.اود اشیاء غیرمنقوله (لکه مثلاً مځکه ،او کور) د قبضه کاوه نه وړاندې د شیخینو رحمهما الله په نیز جائز ده.خود امام محمد رحمه الله په نیز جائز نه ده.

اوس حاصل د عبارت دادې.چه مبیع شئ منقوله وي.او که غیرمنقوله وي.که مشتري د قبضه کاوه نه بغیر اقاله اوکړله.نود طرفینو رحمهما الله په نیز دا اقاله فسخ د بیع ده.خکه چې ددې دواړو په نیز اصل هم دادې.چه اقاله فسخ د بیع وي.

اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز هم که مبیع شئ منقول وي.نو اقاله به فسخ وي.خکه چې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز اګرچه د اقاله بیع کیدل اصل دی.خوچونکه مشتري په شئ مبیع باندې د قبضه کاوه نه وړاندې اقاله کړې ده.اود شئ منقول بیع جائز ده.په دې وجه دا اقاله بیع ګرځول متعذر دی.او هرکله چې اقاله بیع ګرځول متعذر شي.نود

امام ابویوسف رحمه الله په نیز دا فسخ ګڼرلې شي،ځکه به د امام ابویوسف رحمه الله په نیز اقاله بیع وي.ځکه چې د غیرمنقول اقاله بیع ګرځول ممکن دی.اود غیرمنقول اقاله بیع ګرځول ځکه ممکن دی.چه د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د قبضه کاوه نه وړاندې د غیرمنقول بیع جائز ده.( عینی شرح هدایه)

## د ثمن یا مبیع د هلاکت په صورت کښې د اقاله حکم

قَالَ وَهَلَاكُ الثَّمَنِ لَايَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقَالَةِ اود ثمن هلاکیدل، اقاله صحیح کیدلو نه نه منع کوی وَهَلَاكُ الْمَبِيعِ يَمْنَعُ مِنْهَا اود مبیع هلاکیدل ددې نه منع کوی.

**تشریح:**- مسئله داده.چه د عقدبیع نه روسته که بائع سره ثمن هلاك شو.او عاقدینو اقاله کول اوغوښتل.نو اقاله به ټیك وي.خوکه مبیع هلاك شو.نو اقاله به ټیك نه وي.حاصل دا چې ثمن هلاکیدل،د اقاله د صحت لپاره مانع نه دي.خو مبیع هلاکیدل د اقاله د صحت لپاره مانع دي.

لِأَنَّ رَفْعَ الْبَيْعِ يَسْتَدْعِي قِيَامَهُ ځکه چې د بیع لرې کول ددې د موجود کیدلو تقاضاکوی وَهُوَ قَائِمٌ بِالْمَبِيعِ دُونَ الثَّمَنِ اود بیع قیام مبیع سره وي.ثمن سره نه وي.

**تشریح:**- دلیل دادې.چه اقاله نوم دې.د بیع لرې کولو،او بیع مبیع سره قائم وي.ثمن سره قائم نه وي.ځکه چې په عقدبیع کې مبیع اصل وي.ثمن اصل نه وي.ثمن خو په منزله د وصف وي.هم دا وجه ده.که ثمن موجود نه وي.نو عقدبیع بیاهم جائز وي.خوکه مبیع موجود نه وي.نو عقدبیع نه جائزکیږي.نو که مبیع موجود نه وي.نو بیع به موجود نه وي.اوهرکله چې بیع موجود نشي.نو ددې رفع کول یعنی اقاله به هم ټیك نه وي.خوکه ثمن موجود نه وي.او مبیع موجود وي.نو بیع به موجود وي.او هرکله چې بیع موجود ده.نو ددې فسخ یعنی اقاله به هم ټیك وي.

## د بعض مبیع هلاکت په صورت کښې د اقاله حکم

فَإِنْ هَلَكَ بَعْضُ الْمَبِيعِ نوکه د مبیع یوه برخه هلاك شوه جَازَتِ الْإِقَالَةُ فِي الْبَاقِي نو په پاته کې اقاله جائز ده لِقِيَامِ الْبَيْعِ فِيهِ ځکه چې په پاته مبیع کې بیع قائم ده.

**تشریح:**- مسئله داده.که د مبیع څه برخه هلاکه شوه.نو په پاته مبیع کې اقاله جائز ده.مثلاً یو من په دوې (دوه) روپۍ حساب سره ئې لس منه غنم په شل روپو باندې واخستل.بیا څلور منه خرچ شو.او په پاته شپږ منه غنموکې دواړو اقاله اوکړله.نوجائز ده.دلیل دا دې چې پاته مبیع یعنی شپږ منه غنمو کې بیع موجود ده.نو ددې اقاله هم جائز ده.

وَإِنْ تَقَايَضَا اوکه بیع د مقایضه وی تَجُوزُ الْإِقَالَةُ بَعْدَ هَلَاكِ أَحَدِهِمَا نود احدالعوضین هلاکیدلو نه روسته اقاله جائز ده وَلَا تَبْطُلُ بِهَلَاكِ أَحَدِهِمَا اود احدالعوضین تلف کیدلو نه روسته به اقاله باطل نه وي.

**تشریح:**- اوکه بیع مقایضه وي.یعنی د سامان بیع د سامان په عوض وي.مثلا یو غلام ئې د یوې وېنځې په عوض اخستې دی.او بیا احدالعوضین هلاك شو.نو بیا هم اقاله جائز ده.د احدالعوضین په هلاکیدلو سره اقاله نه باطلیږي.

لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَبِيعٌ ځکه چې په دې دواړوکې هر یو مبیع دې فَكَانَ الْمَبِيعُ بَاقِيًا، نو بیع به پاته وي.

**تشریح:**- دلیل دا دې چې په بیع مقایضه کې هرعوض مبیع وي.او هرعوض ثمن وي.نو کوم عوض چې هلاك شو.هغه به ثمن ګرځولې شی.اوکوم چې موجود دې.هغه به مبیع وي.اود مبیع موجود کیدلو په صورت کې چونکه بیع موجود وي.اود بیع موجود کیدلو په صورت کې اقاله صحیح وي.په دې وجه به په دې صورت کې اقاله صحیح وي.

# باب المرابحة والتولية

ژباړه (دا) باب د مرابحه اوتولیه (په بیان کې) دې.



د دې باب پورې دهغه هغه بیوع بیان وو د کومو تعلق چې د بیع سره وو او ددې نه روسته د هغه بیوع

**تشریح:**- د دې باب پورې دهغه هغه بیوع بیان وو د کومو تعلق چې د ثمن سره وی یعنی بیع مرابحه اوبیع تولیه بیان کیږي د کومو تعلق چې د ثمن سره وی یعنی بیع مرابحه اوبیع تولیه

اقسام البیع باعتبارالثمن (*) د ثمن په اعتبارسره د بیع څلور قسمونه دی.په دې شرط چې د ثمن په مقابله کې سامان بیان کیږي د کومو تعلق چې د ثمن اول ارخ ته قطعاً توجه نه کیږي.(2) بیع وی.(1) بیع مساومه: د سامان نرخ (بهاؤ) کول،په دې بیع کې ثمن اول ارخ ته قطعاً توجه نه کیږي. (2) بیع مرابحه: د ثمن اول نه په زیاتی عوض باندې بیع وضعیه: د ثمن اول نه په کم عوض باندې بیع کول (3) بیع کول.(4) بیع تولیه: د ثمن اول په مثل باندې بیع کول. (کذا قاله صاحب الکفایة)

## د بیع مرابحه او تولیه تعریف اوشرعی حیثیت

قَالَ الْمُرَابَحَةُ نَقْلُ مَا مَلَكَهُ بِالْعَقْدِ الْأَوَّلِ فرمائی.مرابحه داده.چه د عقداول په وجه دکوم شی مالك شوې دې بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ مَعَ زِيَادَةِ رِبْحٍ دا د ثمن اول په عوض په زیات نفع سره منتقل کول.

**تشریح:**- ابو الحسین قدوری رحمه الله د مرابحه او تولیه تعریف کوی.فرمائی.بیع مرابحه داده.چه مشتری د څومره قدرې ثمن په عوض سامان اخستې دې.په دې باندې څه معلومه نفع زیاتی کړي.او په بل چا ئې خرڅ کړي.مثل په زر روپۍ ئې واخستلو.او بل سړی په ده اعتماد اوکړلو.او په زر روپو ئې سل روپۍ زیاتی کړلې.اودا سامان ئې واخستلو.نودې ته بیع مرابحه وئیلې شي.

وَالتَّوْلِيَةُ او بیع تولیه داده نَقْلُ مَا مَلَكَهُ بِالْعَقْدِ الْأَوَّلِ چې د عقداول په وجه د کوم شی مالك شوې دې بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ مِنْ غَيْرِ زِيَادَةِ رِبْحٍ دا د ثمن اول په عوض د زیاتی نفع نه بغیر منتقل کول.

**تشریح:**- او بیع تولیه داده.چه د څومره قدرې ثمن په عوض ئې اخستې دې.د نفع اخستلو نه بغیر ئې هم په دومره عوض خرڅ کړي.مثلاً د زر روپو په عوض ئې اس واخستلو.اوهم د زر روپو په عوض ئې خرڅ کړلو.نودې ته بیع تولیه وئیلې شي.

وَالْبَيْعَانِ جَائِزَانِ اودا دواړه بیع جائز دی لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِ الْجَوَازِ اودا دواړه بیع جائز دی وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَى هَذَا النَّوْعِ مِنَ الْبَيْعِ ځکه چې دجواز شرائط جمع دی. او ددې ډول بیع اړتیا دې.

**حل اللغة:**- (1) الحاجة،ضرورت، (2) الماسة،پیښ شوې، (3) الغبی،ناپوهه، (4) المهتدی،تجربه کار (5) تطیب، خوشحالیږي، (6) الزکی،ذهین، (7) الربح،ګټه، (8) یتعمد،اعتماد کولې شي

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه دا دواړه بیع جائز دی.ځکه چې په دې دواړو بیع کې (1) اول خود جواز واړه شرطونه موجود دی.(2) دوهم داچه دداسې قسمه بیع اړتیا هم دې.دداسې ډول بیع اړتیا دې.

لِأَنَّ الْغَبِيَّ الَّذِي لَا يَهْتَدِي فِي التِّجَارَةِ ځکه چې چټل ذهن والا (غبی) سړې چاته چې د اخستلو خرڅولوچم نه ورځی يَحْتَاجُ إِلَى أَنْ هغه ته ددې خبرې اړتیا دې يَعْتَمِدَ فِعْلَ الذَّكِيِّ الْمُهْتَدِي چې دې د ذهین تجربه کار په فعل باندې اعتماد اوکړي وَتَطِيبُ نَفْسُهُ او دده زړه خوشحالیږي بِمِثْلِ مَا اشْتَرَى چې په څومره عوض باندې ئې اخستې دې وَبِزِيَادَةِ رِبْحٍ ددې په مثل یا په زیاتی نفع باندې ئې خرڅ کړي فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِجَوَازِهِمَا نوددې دواړه قسمه بیع ته جائز وئیل واجب شو.

**تشریح:**- دلیل دا دې چې ډیرکرته یو سړې چټل ذهن والا (غبی) اود تجارت د معاملاتو نه ناخبره وي.نو ده ته ددې خبرې اړتیا وي.چه دې د یو پوهه او تجربه کار په فعل باندې اعتماد کوی.او خپل ځان په دې خوشحالوی.چه مادا سامان هم دومره قدرې ثمن په عوض اخستې دې.د څومره قدرې ثمن په عوض چې فلانی پوهه کس اخستې وو.یا ما دومره قدرې نفع ورکړې ده.او اخستې مې دې.په دې بیوع کې به ناخبره سړی ته د دهوکې خوړلو شبه نه وی.بلکه دغه وخت یو ډول اطمینان حاصل وي.بهرحال هرکله چې د جواز شرطونه هم موجود دی.اود خلګو

عادت (اودستور) هم دادې. او اړتیا هم ددې شته دې. نو ددې په جواز کې څه شبه ده. یقینا دا دواړه بیوع به جائز وی.

وَلِهٰذَا كَانَ مَبْنَاهُمَا عَلَى الْأَمَانَةِ او په دې وجه ددې دواړو بنا (بنیاد) په امانت باندې وَالِاحْتِرَازِ عَنِ الْخِيَانَةِ وَعَنْ شُبْهَتِهَا اود خیانت اود خیانت د شبه نه بچکیدلو باندې دې.

حل اللغة:- ① مبنی، بنیاد، ② الاحتراز، پرهیز، ③ بعیرین، تثنیه د بعیر، اوبښ، ④ ثمن، قیمت

تشریح:- هم دا وجه ده. چه د مرابحه او تولیه بنا (بنیاد) هم په دې دې. چه کوم کس د مرابحه او تولیه په طریقه اخستل کوی. امانت دار وی. اود هرداسې شیء نه ځان اوساتي. په کوم کې چې خیانت وی. یا د خیانت شبه وی.

وَقَدْ صَحَّ اودا صحیح ده {أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمَّا أَرَادَ الْهِجْرَةَ چې رسول الله ﷺ کله د هجرت اراده اوفرمائیل ابْتَاعَ أَبُو بَكْرٍ ؓ بَعِيرَيْنِ نو ابوبکر ؓ دوې (دوه) اوبښان واخستل فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ ﷺ: وَلِّنِي أَحَدَهُمَا، فَقَالَ: هُوَ لَكَ بِغَيْرِ شَيْءٍ ابوبکر ؓ اوونیل. دا خوستا لپاره د پیسو نه بغیر دی فَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: أَمَّا بِغَيْرِ ثَمَنٍ فَلَا} ([1]) نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. بهرحال د مال نه بغیر به نه وی.

تشریح:- د بیع تولیه جواز د حدیث نه هم ثابت دی. نقل دی. چه کله نبی کریم ﷺ د هجرت اراده اوفرمائیله. نو صدیق اکبر ؓ دوې (دوه) اوبښان واخستل. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل. چه په دې دواړو کې یوماته د تولیه په طریقه راکړه. یعنی په څومره چې دې اخستې دې. په هم دومره ئې په ما راخرڅ کړه. ابوبکر ؓ اوفرمائیل. چه دا ستا لپاره د ثمن نه بغیر دې. رسول الله ﷺ اوفرمائیل. چه د ثمن نه بغیر خو به ئې وانخلم.

او په مصنف ابن عبدالرزاق کې د سعیدبن المسیب ؓ حدیث دې. «أن النبی ﷺ قال ألتولیة والإقالة والشرکة فلا بأس به» یعنی د الله تعالی رسول ﷺ فرمائیلی دی. چه تولیه، اقاله، او شرکت جائز دې. په دې کې هیڅ باك نشته.

## د بیع مرابحه اوتولیه عوض مثلی کیدل ضروری دی

قَالَ وَلَا تَصِحُّ الْمُرَابَحَةُ وَالتَّوْلِيَةُ فرمائی. او بیع مرابحه او تولیه جائز نه ده حَتَّى يَكُونَ الْعِوَضُ مِمَّا لَهُ مِثْلٌ. تر دې چې ثمن داسې شیء وی. چه ددې مثل وی.

تشریح:- ابو الحسین قدوری ؒ فرمائی. چه بیع مرابحه او بیع تولیه هغه وخت جائز ده. چه کله ثمن د ذوات الامثال څخې وی. یعنی د مکیلاتو، یا موزونات، یا د عددیات متقاربه څخې وی. اوکه ثمن ذوات القیم څخې وی. مثلا کبرې، یا څاروی، یا غلام ئې ثمن جوړ کړې وی. نو بیا به بیع مرابحه او تولیه جائز نه وی.

لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مِثْلٌ ځکه که ددې مثل نه وی لَوْ مَلَكَهُ نو که مالك شو مَلَكَهُ بِالْقِيمَةِ نو بالقیمت به ددې مالك وی وَهِيَ مَجْهُولَةٌ حالانکه قیمت مجهول دې وَلَوْ كَانَ الْمُشْتَرِي بَاعَهُ مُرَابَحَةً وکه مشتری دا شیء د مرابحه په طور دداسې سړی په لاس خرڅ کړو مِمَّنْ يَمْلِكُ ذَٰلِكَ الْبَدَلَ کوم چې ددې عوض مالك دې وَقَدْ بَاعَهُ بِرِبْحِ دِرْهَمٍ حالانکه ده په یو درهم نفع باندې أَوْ بِشَيْءٍ مِنَ الْمَكِيلِ مَوْصُوفٍ یا د یومکیلی متعین شیء په نفع باندې خرڅ کړو جَازَ نو جائز دې لِأَنَّهُ يَقْدِرُ عَلَى الْوَفَاءِ ځکه چې دې د هغه شیء په ادا کاوه باندې قادر دې بِمَا الْتَزَمَ د کوم چې ده التزام کړې دې.

---

([1]) غربه الزیلعی ؒ ثم قال وروی عبدالرزاق فی مصنفه ....عن سعید بن المسیب ؒ عن النبی ﷺ قال ((التولیة والإقالة سواء لا بأس به)) ثم ذکرسنداً آخر فقال أخبرنا ابن جریج عن ربیعة عن النبی ﷺ حدیثاً مستفاضا بالمدینة قال من إبتاع طعاماً فلا یبیعه حتی یقبضه ویستوفیه إلا أن یشرک فیه، أو یولیه أویقیله ثم ذکر حدیث أبی بکرصدیق ؓ حیث قال فی البخاری عن الزهری عن عروة عن عائشة ؓ وفیه أنا أبابکرقال للنبی ﷺ خذ بأبی أنت وأمی یا رسول الله إحدی راحلتی هاتین فقال ﷺ بالثمن الحدیث لیس فیه غیرذلک (کذا فی نصب الرایة ٤/٦٣)_



حل اللغة:- ① المرابحة، ګټه ② ، الربح، ګټه، ③ موصوفه، متعین، ④ الوفاء، ادا کول

تشریح:- دلیل دادې. چه وړاندې تیر شوی دی. چه په بیع مرابحه کې او بیع تولیه کې د خیانت اوشبه خیانت دواړو نه احتراز ممکن دې. مثلاً یو غلام ئې د زر دینار په عوض واخستلو. بیا په بل باندې د یوولس سوه دینار په عوض خرڅ کړلو. یا ئې هم د زر روپو په عوض خرڅ کړلو. نو په رومبی صورت کې به بیع مرابحه وی. او په دوهم صورت کې به بیع تولیه وی. ښکاره ده. چه نه په دې کې خیانت شته. اونه پکې د خیانت شبه شته. یا مثلاً یو غلام ئې د سل صاع غنمو په عوض واخستلو. بیا ئې دا لس دپاسه سل صاع غنمو په عوض خرڅ کړلو. یا ئې د سل صاع غنمو په عوض خرڅ کړلو. نو په رومبی صورت کې بیع مرابحه او په دوهم صورت کې به بیع تولیه وی. په دې کې نه خیانت دې. اونه د خیانت شبه ده. اود ذوات القیم په صورت کې اګرچه د خیانت نه ځان ژغورل ممکن دی. خود شبهة الخیانت نه ځان ژغورل ممکن نه دی. مثلاً یوکس یو غلام د اس په عوض واخستلو. بیا ئې دا غلام مرابحة یا تولیة خرڅ کړلو. نو مشتری ثانی یعنی حامد د هغه شیء په ادا کاوه قادر دې. د کوم شیء چې ده التزام کړې دې. یعنی په بیع اول کې چې کوم ثمن وو. یعنی اس، حامد ددې په ادا کاوه قادر دې. او په دې صورت کې نه خیانت دې. اونه د خیانت شبه ده. ځکه جائز دې.

وَإِنْ بَاعَهُ بِرِبْحِ الْأَحَدَ عَشَرَ دَهْ يَازْدَهْ وکه ده یازده (یعنی دس فی صد) نفع باندې ئې خرڅ کړو لَا يَجُوزُ نو جائز نه دې.

تشریح:- که خالد دا غلام په حامد باندې ددې اس په عوض، یا په لس فی صد نفع باندې خرڅ کړلو. نودا مرابحه ناجائز ده. د ده یازده یا د لس فی صد مطلب دادې. که ثمن اول لس درهم وی. نو نفع به یو درهم وی. اوکه شل درهم وی. نو نفع به دوې (دوه) درهمه وی. او که دیرش درهمه وی. نو نفع به درې درهمه وی. اوکه ثمن اول سل درهم وی. نو نفع به لس درهمه وی. وغیره ذالك.

لِأَنَّهُ بَاعَهُ بِرَأْسِ الْمَالِ وَبِبَعْضِ قِيمَتِهِ ځکه چې ده د راس المال او ددې د بعض قیمت په عوض خرڅ کړې دې. لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ ځکه چې دا د ذوات الامثال څخې نه دې.

تشریح:- اودا ناجائز ځکه ده. چه ده یازده، یا لس فی صد نفع ددې خبرې تقاضا کوی. چه نفع د راس المال یعنی د ثمن د جنس څخې وی. ځکه چې نفع د ثمن لسمه برخه ده. اود شیء لسمه برخه هم ددې د جنس څخې وی. او دلته کې ثمن یعنی اس د ذوات الامثال څخې نه دې. بلکه د ذوات القیم څخې دې. نو ګویا خالد دا غلام په حامد باندې ددې اس په عوض (کوم چې په بیع اول کې ثمن وو) او ددې په لسمې برخې (حصې) عوض باندې خرڅ کړې دې. اود اس لسمه برخه به د اس دعام قیمت په ذریعه کیږی. او قیمت مجهول دې. نو هرکله چې د اس قیمت مجهول دې. نو د قیمت اندازه کولو کې که خیانت متحقق نه وی. نود خیانت شبه به ضرور متحقق وی. او وړاندې تیر شوی دی. چه په بیع مرابحه اوتولیه کې خیانت اوشبه د خیانت دواړو نه ځان ژغورل ضروری دی. ځکه په دې صورت کې د شبه خیانت په وجه بیع مرابحه ناجائز ده.

## په راس المال کښې خرچه حسابول

وَيَجُوزُ أَنْ يُضِيفَ إِلَى رَأْسِ الْمَالِ أُجْرَةَ الْقَصَّارِ وَالطِّرَازِ وَالصَّبْغِ وَالنَّقْلِ وَأُجْرَةَ حَمْلِ الطَّعَامِ او په راس المال کې د دهوبی مزدوری، اود نقش ونګار جوړونکی مزدوری، اود رنګ اجرت، اود ګلونو جوړونکی مزدوری، اود غلې منتقل کاوه مزدوری ملاوول جائز دی.

حل اللغة:- ① یضیف، ملاؤ کړی، ② القصار، دهوبی، ③ الطراز، نقش اونګار کونکې، ④ الصبغ، رنګ

تشریح:- ابو الحسین قدوری ؒ فرمائی. چه د بیع مرابحه اوبیع تولیه کاوه په وخت راس المال یعنی ثمن سره د دهوبی مزدوری ملاوول جائز دی. مثلاً یو تهان ئې په سل روپۍ واخستلو. بیا ئې دهوبی ته پنځه روپۍ مزدوری ورکړله. اودا (کپړه) ئې اووینځله. نو اوس مشتری دا تهان په پنځه دپاسه سل روپۍ باندې په نفع مرابحة یا د نفع نه بغیر د پنځه دپاسه سل روپو په عوض تولیة خرخولی شی. دغه ډول که په کپړه ئې ګلونه (نقش ونګار) جوړ کړل. نو

ددې نقش ونګار كونكي مزدوري د راس المال سره د ملاوولو اجازت دې.دغه ډول د رنګريز مزدوري ملاوول جائز دی.او دغه ډول د ګلونو جوړونكي مزدوري ملاوول جائز دی.مثلاً يوسړی په سل روپۍ باندې كمبل يا پټو (څادر) واخستلو.بيا ئې چاته لس روپۍ مزدوري وركړله.او ددې دواړو طرفونو ته ئې ګلونه (نقش ونګار) جوړ كړل.نواوس كه دا سړې د مرابحه يا توليه په طريقه خرڅول اوغواړی.نود مرابحه په صورت كې به په لس دپاسه سل روپۍ باندې نفع اخلی.اود توليه په صورت كې به ئې د لس دپاسه سل روپو په عوض خرڅوی.اودغه ډول د يوځاني نه بل ځاني ته د غلې اوړلو مزدوري (يعنی كرايه) راس المال سره ملاوول جائز دی.مثلاً يوسړی په ديوبند كې لس منه غنم د دوې (دوه) سوه روپو په عوض واخستل.بيا ئې شل روپۍ د بار راوړلو مزدوري (كرايه) وركړله.اودا غله ئې سهارنپور ته منتقل كړله.نو اوس كه مشتری په سهارنپور كې دا غنم مرابحة يا توليةً خرڅول اوغواړی.نود باررا وړلو مزدوري يعنی شل روپۍ راس المال سره ملاوولې شی.نود مرابحه په صورت كې شل دپاسه دوې (دوه) سوه روپۍ باندې نفع اخلی.اود توليه په صورت كې به ئې د دوی (دوه) سوه شل روپو په عوض خرڅوی.بهرحال په بيع مرابحه اوتوليه كې راس المال سره د دهوبی،اود نقش ونګار كونكی،د رنګريز،اود ګلونو جوړونكي اود غلې منتقل كونكي مزدوري ملاوول جائز دی.

لِأَنَّ الْعُرْفَ جَارٍ بِإِلْحَاقِ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ بِرَأْسِ الْمَالِ فِي عَادَةِ التُّجَّارِ خكه چې د سوداګرو په عادت كې دا شيان راس المال سره د ملاوولو عرف جاری دې.

**تشريح:-** دليل دادې.چه د تاجرانو په عرف كې ددې څيزونو مزدوري (خرچه) راس المال سره ملاوول جائز دی.او عرف يو شرعی حجت دې.په دې وجه د ذكرشوی څيزونو مزدوري د راس المال سره ملاوول جائز دی.

وَلِأَنَّ كُلَّ مَا يَزِيدُ فِي الْمَبِيعِ أَوْ فِي قِيمَتِهِ اوخكه چې كوم شئ په بيع كې يا ددې په قيمت كې زياتوالې اوكړی يُلْحَقُ بِهِ دا راس المال سره لاحق كولای شی هَذَا هُوَ الْأَصْلُ هم دا اصل دې.

**تشريح:-** دوهم دليل كوم چې د فقهاؤ يوه قاعده هم ده.دادې.چه كوم شئ پخپله په مبيع كې يا ددې په قيمت كې زياتوالې كوی.د هغې راس المال سره ملاوول جائز دی.

وَمَا عَدَدْنَاهُ اوكوم شيان چې موږ شماركړې دی بِهَذِهِ الصِّفَةِ، دا هم ددې صفت دی لِأَنَّ الصَّبْغَ وَأَخَوَاتِهِ يَزِيدُ فِي الْعَيْنِ خكه چې رنګ او ددې پشان شيان په عين شئ كې اضافه كوی.

**تشريح:-** او كوم شيان چې په متن كې ذكر دی.دا واړه هم په دې صفت كې دی.خكه چې رنګ، نقش ونګار، ګلونه جوړول،اود كپړې وينځلو سره په مبيع كې زياتوالې كيږی.او په بار راوړلو سره قيمت زياتيږی.خكه چې په ځاني بدلولو سره قيمت بدليږی.هم دا وجه ده.چه د يوڅيز قيمت يوځاني كې كم وی.او په بل ځاني كښې زيات وی.

وَالْحَمْلُ يَزِيدُ فِي الْقِيمَةِ او بوج اوړل په قيمت كې اضافه كوی إِذِ الْقِيمَةُ تَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمَكَانِ خكه چې ځاني بدلولوسره قيمت بدليږی.

**تشريح:-** د علامه مرغينانی رحمه الله قاعده اګرچه صحيح ده.خو كله كله ددې خلاف هم كيدلې شی.يعنی داسې كيږی.چه د كوم ځاني نه غله منتقل شوې ده.هلته كې قيمت زيات وی.اوكوم ځاني اړخ ته چې منتقل شوې وی.هلته كې قيمت كم وی.نو اوس په داسې صورت كې به په باراوړلو سره قيمت كميږی.زياتيږی به نه.نود سوداګرو عرف بنا (بنياد) ګرځول انسب او غوره دی.

### د بائع لپاره د استعمال الفاظ

وَيَقُولُ قَامَ عَلَيَّ بِكَذَا او داسې به وائی.(چه دا څيز) ماته په دومره كې پريوتې دې وَلَمْ يَقُلْ اشْتَرَيْتُهُ بِكَذَا اودا به نه وائی.چه ما دا په دومره باندې اخستې دې كَيْ لَا يَكُونَ كَاذِبًا چې دروغجن نه شی.



**تشريح:-** ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه كوم ځاني كې راس المال يعنی ثمن سره پورتنئ خرچه ملاوولو اجازت دې.هلته كې به مرابحة يا توليةً خرڅولو په وخت دا وائی.چه دا شئ ماته په دومره روپو باندې پريوتې دې.خكه چې دا وينا صداقت او رشتيا دی.خودا به نه وائی.چه مادا شئ په دومره روپو باندې اخستې دې.خكه چې دا به دروغ وی.او دروغ وئيل حرام دی.خوكه يوكس سامان په سل روپۍ باندې واخستلو.بيا ئې په دې سامان باندې ثمن زيات مثلاً پنځيښت دپاسه سل روپۍ اولیكلې.بيا ده په ليكلی شوو باندې مرابحه اوكړله.مثلاً مشتری اووئيل.چه كوم رقم په سامان باندې ليكلې شوې دې.د لس روپو په نفع سره ئې ددې په عوض خرڅوم.يعنی يوسل پنځه ديرش روپۍ په عوض ئې خرڅوم.نودا جائز دی.په دې صورت كې به خونه دا وائی.چه دا سامان ماته په پنځيښت دپاسه سل روپۍ پريوتې دې.اونه به دا وائی.چه ما د يوسل پنځيښت روپو په عوض اخستې دې.خكه چې دا دواړه خبرې دروغ دی.كه داسې اووائی.چه په سامان باندې يوسل پنځيښت روپۍ ليكلی شوی دی.په دې باندې لس روپۍ نفع اخلم.او خرڅومه ئې.په داسې وئيلوكې به د دروغو نه مجرم كيږی.

وَسَوْقِ الْغَنَمِ اود چيلو شړل بِمَنْزِلَةِ الْحَمْلِ،د غلې اوړلو په مرتبه كې دی بِخِلَافِ أُجْرَةِ الرَّاعِي په خلاف د څرونكي اجرت وَكِرَاءِ بَيْتِ الْحِفْظِ،اود ساتنه ځاني د كرايه لِأَنَّهُ لَا يَزِيدُ فِي الْعَيْنِ وَالْمَعْنَى خكه چې دا نه په عين مبيع كې زياتوالې كوی.اونه په قيمت كې زياتوالې كوی

**حل اللغة:-** ① السوق،بوتلل ② ،الحمل،بار، ③ الراعي،څرونكې، ④ كراء،كرايه

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د چيلو يا د نورو څاروو راښكل د باراوړلو په مرتبه كې دی.يعنی لكه څنګه چې د باراوړلو خرچه د راس المال يعنی ثمن سره ملاوول جائز دی.نو دغه ډول د څاروو راښكلو( او شړلو) خرچه به هم د راس المال يعنی د څاروو ثمن سره ملاوول جائز دی.خود څاروو څرونكي مزدوري د څاروو ثمن سره ملاوول جائز نه دی.دغه ډول د مبيع د ساتنه لپاره ئې كه كور په كرايه واخستلو.نود كور كرايه هم ثمن سره ملاوول جائز نه دی.خكه چې دا دواړه شيان نه خود مبيع په ذات كې څه اضافه كوی.اونه ددې قيمت زياتوی.حالانكه هم دا دوې (دوه) خبرې د راس المال سره د پورتنئ خرچې ملاوولو سبب وو.نوكله چې دا دواړه خبرې اونه موندې شوې.نود څرونكی مزدوری اود محافظ ځاني كرايه به هم د راس المال يعنی ثمن سره نشی ملاوولی.

وَبِخِلَافِ أُجْرَةِ التَّعْلِيمِ او په خلاف د تعليم د اجرت لِأَنَّ ثُبُوتَ الزِّيَادَةِ خكه چې د زياتوالی ثبوت د داسې معنی په وجه دې لِمَعْنًى فِيهِ كوم چې پخپله مبيع كې دې وَهُوَ حَذَاقَتُهُ او هغه دده ذهانت دې.

**حل اللغة:-** ① الاجرة،مزدوری، ② التعليم،علم خودل، ③ الحذاقة،ذهانت،هوښيارتيا ، ④ ثبوت،ثابتيدل

**تشريح:-** اوكه غلام ته تعليم وركړی او ددې لپاره پرې روپۍ خرچ كړی نودا خرچه به هم د راس المال يعنی د غلام ثمن سره نه ملاويږی.خكه چې په دې صورت كې د غلام په ماليت كې زياتوالی ثابتيږی.خود داسې صفت په وجه كوم چې پخپله په غلام كې موجود دې.يعنی دده ذكاوت او ذهانت.تعليم او تعلم ته په دې كې هيڅ دخل نشته.هم دا وجه ده.چه په كاڼړوكې چونكه ذكاوت نه وی.په دې وجه ددې لپاره تعليم مفيد اوكارآمد نه دې.خو كه د تعليم خرچه راس المال سره لاحق (ملاوولو) كاوه باندې عرف موجود وی.نو بيا د تعليم خرچه د غلام راس المال يعنی ثمن سره لاحق كاوه او يوځاني كولوكې هيڅ باك نشته.

### په مرابحه كښې د خيانت په خبريدلو سره د بيع فسخ كولو يا نافذكولوحكم

فَإِنِ اطَّلَعَ الْمُشْتَرِي عَلَى خِيَانَةٍ فِي الْمُرَابَحَةِ بيا كه مشتری په مرابحه كې په څه خيانت باندې خبرشو فَهُوَ بِالْخِيَارِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز مشتری ته اختيار دې.كه غواړی.نودا دې د پوره ثمن په عوض واخلی وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ اوكه غواړی.نودا دې پريږدی.

**حل اللغة:-** ① اطلاع،خبريدل، ② الترك،پريخودل، ③ الاسقاط،ساقط كول ④ الثمن،قيمت

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی یو شی مرابحة خرڅ کړلو.مثلاً دا ئې اووئیل.چه ما دا ګهړئ په دوې (دوه) نیم سوه روپئ اخستې ده.زه پنځوس روپئ نفع اخلم.او خرڅوم ئې. دوهم کس یعنې مشتري دابیع قبول کړله.بیا مشتري ته پته اولګیدله.چه زما بائع دا ګهړئ دوې (دوه) سوه روپئ باندې اخستې وه.ده ماسره د پنځوسو روپو خیانت کړې دې.مشتري ته د خیانت علم یا خو د بائع په اقرار کولوسره اوشو.یعنې بائع د خرڅولو نه روسته اقرار اوکړلو.چه ما دا ګهړئ په دوې (دوه) سوه روپئ اخستې وه.او یا مشتري د خیانت دعوه اوکړله.اود بینه پیش کاوه نه عاجزشو.اود بائع نه ئې د قسم مطالبه اوکړله.خوبائع د قسم نه انکار اوکړلو.نوپه دې صورت کې به هم د بائع خیانت ثابت شي.بهرحال د بیع مرابحه نه روسته که مشتري د بائع په خیانت باندې خبرشو.نود حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز مشتري ته اختیار دې.چه مشتري مبیع یعنې ګهړئ په پوره ثمن یعنې د دوې (دوه) نیم سوه روپو په عوض واخلي.یابیع ختم کړي.﴾

**وَإِنْ اطَّلَعَ عَلَى خِيَانَةٍ فِي التَّوْلِيَةِ** اوکه په تولیه کې مشتري په خیانت باندې خبرشو **أَسْقَطَهَا مِنَ الثَّمَنِ**[1] نود خیانت مقدار دې د ثمن نه ساقط کړي.

**تشریح:-** اوکه بیع تولیه کې په خیانت باندې خبرشو.مثلاً بائع اووئیل.چه مادا ګهړئ په دوې (دوه) نیم سوه روپئ اخستې وه.اود نفع اخستلو نه بغیر ئې په دوې (دوه) نیم سوه روپئ خرڅوم. دوهم کس دا ګهړئ واخستله.بیا مشتري ته په تیرو شوو دوو طریقو( د بائع د خیانت اقرار یا د قسم نه انکار) دوو طریقو کې په یوې طریقې سره معلومه شوه.چه ده دا ګهړئ په دوې (دوه) سوه روپئ اخستې وه.اود پنځوس روپو خیانت ئې کړې دې.نود حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز به مسمی مقدار یعنې په دوې (دوه) نیم سوه روپو کې د خیانت مقدار یعنې پنځوس روپئ د بائع نه واپس اخلي.اوکه ثمن ئې ادا کړې نه وي.نود خیانت مقدار دې کم کړي.پاته دوې (دوه) سوه روپئ دې ورکړي.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ:** ابویوسف ﷫ فرمائیلي دی **يَحُطُّ فِيهِمَا** او چې په مرابحه او تولیه دواړوکې دې د خیانت مقدار کم کړي.

**حل اللغة:-** ① یحط،کموی، ② یخیر،اختیارورکولې شي ③ الترویج،رواج ورکول ④ الترغیب،شوق پیدا کول

**تشریح:-** حضرت امام ابویوسف ﷫ فرمائي.چه په بیع مرابحه اوبیع تولیه دواړوکې به د خیانت مقدار یعنې پنځوس روپئ کمولې شي.هم دا یوقول د امام شافعي ﷫ دې.د امام احمد ﷫ مذهب هم دا دې.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ:** اوامام محمد ﷫ فرمائیلي دی **يُخَيَّرُ فِيهِمَا** چې دواړوکې مشتري ته اختیار دې.

**تشریح:-** او امام محمد ﷫ فرمائي.چه په بیع مرابحه او بیع تولیه دواړوکې مشتري ته اختیار دې.که زړه ئې غواړي.نو مبیع به د پوره ثمن په عوض اخلي.اوکه غواړي.نو بیع دې ترك کړي.هم دا یوقول د امام شافعي ﷫ دې.

**لِمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ** د امام محمد ﷫ دلیل دادې **أَنَّ الِاعْتِبَارَ لِلتَّسْمِيَةِ** چې اعتبارهم ددې ثمن دې.کوم چې بیان شو **لِكَوْنِهِ مَعْلُومًا وَالتَّوْلِيَةُ وَالْمُرَابَحَةُ تَرْوِيجٌ وَتَرْغِيبٌ** څکه چې دا معلوم دې.اود تولیه او مرابحه ذکر د رواج ور کاوه اود شوق پیدا کاوه لپاره دې **فَيَكُونُ وَصْفًا مَرْغُوبًا فِيهِ** نودا به وصف مرغوب فیه وي **كَوَصْفِ السَّلَامَةِ** لکه څنګه چې د سلامت مبیع وصف دې **فَيَتَخَيَّرُ بِفَوَاتِهِ** نود وصف په فوت کیدلو سره به مشتري ته اختیار وي.

**تشریح:-** د امام محمد ﷫ دلیل دادې.چه په عقدبیع کې کوم ثمن بیانیږي.هم د هغې اعتبار به کولې شي. څکه چې دغه ثمن معلوم دې.حاصل داچه د ثمن معلوم کیدل ضروري دی.اود ثمن علم په بیانولو سره کیږي.نو ثمن بیانول

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في ردالمحتار(۱۷٤\٤) وكنز الدقائق (۳۲۳) والقدوري (ص،۷۳) نقلاً عن القول الراجح (۵۲\۲)-



به معتبر وي.اوهرکله چې د ثمن بیانول معتبر شو.نو عقدبیع به هغه ثمن سره متعلق کیږي.کوم ثمن چې بیان شوي دي.او پاتې شوه مرابحه یا تولیه بیانول،نودا د رغبت( او شوق) زیاتولو لپاره دي.یعنې د مرابحه او تولیه ذکرکول داسې وصف دي.چه ددې په وجه شوق زیاتیږي.لکه د مبیع سلامتیا وصف،یو مرغوب فیه وصف دي.( یعني خلګ ئې خوښوي) اود وصف مرغوب فیه فوت کیدلو سره مشتري ته د مبیع پاته ساتلو،اود ختمولو( فسخ) اختیار وي.خود وصف مرغوب فیه فوت کیدلو په وجه په ثمن کې د څه کمولو اختیار نه وي.لکه څنګه چې د مبیع عیب دارکیدلو په صورت کې مشتري ته اختیار وي.چه دې دپوره ثمن په عوض مبیع واخلي.یا بیع رد کړي.

**وَلِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ** اود ابویوسف ﷫ دلیل دادې **أَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ كَوْنُهُ تَوْلِيَةً وَمُرَابَحَةً** چې اصل په دې کې تولیه او مرابحه کیدل دي **وَلِهَذَا يَنْعَقِدُ بِقَوْلِهِ وَلَّيْتُكَ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ أَوْ بِعْتُكَ مُرَابَحَةً عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ** اوهم په دې وجه عقد دده په قول ﴿ولیتك بالثمن الأول او بعتك مرابحة بالثمن الأول﴾ سره منعقد کیږي. **إِذَا كَانَ ذَلِكَ مَعْلُومًا** کله چې ثمن معلوم وي. **فَلَا بُدَّ مِنَ الْبِنَاءِ عَلَى الْأَوَّلِ** نو په عقداول باندې د عقدثاني بناء ضروري ده **وَذَلِكَ بِالْحَطِّ، غَيْرَ أَنَّهُ يَحُطُّ فِي التَّوْلِيَةِ** اودا( زیاتی مقدار به) په کمولوسره کیږي **قَدْرَ الْخِيَانَةِ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ** مګرداچه په تولیه کې د خیانت مقدار به د راس المال نه کمولې شي **وَفِي الْمُرَابَحَةِ مِنْهُ وَمِنَ الرِّبْحِ** او په مرابحه کې به د راس المال او نفع دواړو نه کمولې شي.

**حل اللغة:-** ① یحیط،کموی، ② تحقق،ثابتیدل، ③ الربح،ګټه، ④ راس المال،اصل سرمایه

**تشریح:-** د حضرت امام ابویوسف ﷫ دلیل دادې.چه په لفظ مرابحه اوتولیه کې اصل دادې.چه عقد مرابحه دې.اوکه عقدتولیه،ثمن ذکرکول اصل نه دی.هم دا وجه ده.چه په ﴿ولیتك بالثمن الأول﴾ ویلو سره عقدتولیه او په ﴿بعتك مرابحة على الثمن الأول﴾ ویلو سره عقدمرابحه منعقدکیږي. خو شرط دا دې. چې ثمن معلوم وي.نو د عقدثاني یعنې د مرابحه او تولیه د ثمن په حق کې په عقداول باندې مبني کیدل ضروري دی.اود خیانت مقدار یعنې پنځوس روپئ چونکه په عقداول کښې ثابت نه دی.څکه به دا په عقدثاني کې ثابتول هم ممکن نه وي.اوهرکله چې د خیانت مقدار په عقدثاني یعنې په مرابحه اوتولیه کې ثابتول ممکن نه دی.نودا به د ثمن نه کمولې شي.خو دومره توپیر ضرور دې.چه د خیانت مقدار په عقدتولیه کې صرف راس المال یعنې د ثمن نه کمولې شي.او په عقدمرابحه کې راس المال او نفع دواړو نه کمولې شي.مثلاً په ذکر شوي مثال کې دوې (دوه) نیم سوه روپئ راس المال دې.او په دې کې پنځوس روپئ دخیانت مقدار دې.نو هرکله چې مشتري اول ګهړئ د دوې (دوه) نیم سوه روپو په عوض د بیع تولیه په طریقه خرڅه کړله.نو راس المال یعنې د دوې (دوه) نیم سوه روپو څخه به د خیانت مقدار کمولې شي.یعنې پنځوس روپئ به کمولې شي.او دوې (دوه) سوه روپئ به مشتري ثاني، مشتري اول ته ورکوي.اود بیع مرابحه په صورت کې پنځوس روپئ کوم چې د خیانت مقدار دې.د راس المال څخه به کمولې شي.اوچونکه ددې پنځوس روپو نفع لس روپئ جوړیږي.څکه به لس روپئ د نفع نه کمولې شي.اوهرکله چې پنځوس روپئ د خیانت مقدار د راس المال نه،او لس روپئ د نفع نه کمې کړې شوې.نو مشتري ثاني به په دوې (دوه) سوه څلویښت روپئ باندې ګهړئ اخلي.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** اود ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې **أَنَّهُ لَوْ لَمْ يَحُطَّ فِي التَّوْلِيَةِ** که په بیع تولیه کې د خیانت مقدار نه کم نکړې شي **لَا تَبْقَى تَوْلِيَةً،** نو تولیه به پاته نه پاتې کیږي **لِأَنَّهُ يَزِيدُ عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ** څکه چې په ثمن اول باندې زیاتوالې کیږي **فَيَتَغَيَّرُ التَّصَرُّفُ فَتَعَيَّنَ الْحَطُّ** نو تصرف به بدل شي.په دې وجه کمول متعین شو.

**تشریح:-** د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې.چه د بیع تولیه په صورت کې که مقدارخیانت کم نکړې شو.نو دسره به تولیه پاته نشي.څکه چې بیع تولیه د ثمن اول په عوض کیږي.او دلته کې داسې نه ده.څکه چې ثمن اول دوې (دوه) سوه روپئ دی.اود پنځوس روپو ئې خیانت کړې دې.مشتري اول ګهړئ په دوې (دوه) نیم سوه روپئ خرڅه کړې ده.نوکه مقدارخیانت یعنې پنځوس روپئ د بیع تولیه په صورت کې کم نکړې شوې.نودا بیع به د ثمن اول په عوض نه وي.او هرکله چې دا بیع د ثمن اول په عوض نشوه.نودا به بیع تولیه هم نه وي.اوهرکله چې بیع

تولیه نشوه. نو د سره تصرف بدل شو. یعنی بیع تولیه، بیع مرابحه شوه. او تصرف بدلول ناجائز دی. په دې وجه په بیع تولیه کي مقدار خیانت یعنی پنځوس روپۍ کمول متعین شوې.

| |
|---|
| وَفِي الْمُرَابَحَةِ لَوْلَمْ يُحَطَّ او په مرابحه کي که د خیانت مقدار کم نکړې شي تَبْقَى مُرَابَحَةً نو مرابحه به پاته کیږي وَإِنْ كَانَ يَتَفَاوَتُ الرِّبْحُ اګرچه نفع متفاوت شي فَلَا يَتَغَيَّرُ التَّصَرُّفُ نو تصرف به نه بدلیږي فَأَمْكَنَ الْقَوْلُ بِالتَّخْيِيرِ او مشتري ته د اختیار ور کاوه قول ممکن شو. |

تشريح:- خو په بیع مرابحه کي که مقدار خیانت یعنی پنځوس روپۍ کم نکړې شوې. نو بیع مرابحه د تصرف نه بغیر چې څنګه وه. هم هغه شان به پاته وي. البته نفع به متفاوت شي. یعنی د مشتري ثاني خیال وو. چه مشتري اول پنځوس روپۍ نفع کړې ده. خود خیانت ښکاره کیدلو نه روسته معلومه شوه. چه مشتري اول، د مشتري ثاني نه سل روپۍ نفع اخستې ده. پنځوس روپۍ د خیانت په صورت، او پنځوس روپۍ ئې د نفع په صورت اخستې دی. نو د مشتري اول ددې فریب او دهوکې ورکولو په وجه د مشتري ثاني رضامندي فوت شوه. او د مشتري رضامندي فوت کیدلو سره مشتري ته د بیع پاته ساتلو، او د ختمولو اختیار وي. ځکه مشتري ثاني ته د مرابحه په صورت کي اختیار دی. چه دې مبیع یعنی ګهړۍ د پوره ثمن په عوض واخلي. یا بیع مرابحه پریږدي.

| |
|---|
| فَلَوْهَلَكَ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّهُ نو که د واپس کاوه نه وړاندې مبیع هلاک شو أَوْحَدَثَ فِيهِ یا په دې کي داسې عیب پیدا شو مَا يَمْنَعُ الْفَسْخَ کوم چې فسخ منع کوي يَلْزَمُهُ جَمِيعُ الثَّمَنِ فِي الرِّوَايَاتِ الظَّاهِرَةِ نو په ظاهر روایاتو کي د مشتري په ذمه به پوره ثمن لازم وي. |

حل اللغة:- ① هلك،هلاك شو، ② حدث،پیدا شو، ③ یمنع ،منع کوي، ④ یلزم،لازمیږي

تشريح:- صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي. که په دوې (دوه) سوه روپۍ ئې ګهړۍ واخستله. او بل کس ته ئې اووئیل. چه دا ګهړۍ ما په دوې (دوه) نیم سوه روپۍ باندې اخستې ده. یعنی د پنځوس روپو ئې خیانت اوکړلو. اووې وئیل. چه دا زه د پنځوس روپو په نفع یعنی په درې سوه روپۍ باندې خرڅوم. مشتري ثاني ته د اخستلو نه روسته معلومه شوه. چه مشتري اول د پنځوس روپو خیانت کړې دې. نو د خیانت ښکاره کیدلو نه روسته مبیع یعنی ګهړۍ د مشتري ثاني نه ضائع شوه. یا په دې کي داسې عیب پیداشو. چه ددې په وجه دا نشي واپس کولې. نو پوره ثمن یعنی درې سوه روپۍ په مشتري ثاني باندې واجب وي.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ مُجَرَّدُ خِيَارٍ ځکه چې مشتري ته محض اختیار دی لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ چې ددې په مقابله کي ثمن نشته كَخِيَارِ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ لکه خیار رؤیت او خیار شرط. |

تشريح:- دلیل دا دې د خیانت ښکاره کیدلو نه روسته مشتري ثاني ته صرف د مبیع واپس کاوه اختیار وو. او ددې اختیار په مقابله کي د ثمن هیڅ برخه نه وي. نو هرکله چې د مبیع ضائع کیدلو په وجه مبیع واپس کول متعذر شو. نو د مشتري ثاني اختیار هم ساقط شو. او د اختیار په مقابله کي چونکه د ثمن هیڅ برخه نه وي. ځکه به د ثمن نه د څه کمولو اختیار هم نه وي. او هرکله چې د ثمن نه د څه کمولو اختیار نشته. نو په مشتري به پوره ثمن یعنی درې سوه روپۍ لازم وي. لکه څنګه چې د خیار رؤیت او خیار شرط په مقابله کي د ثمن هیڅ برخه نه وي. یعنی د خیارشرط، یا خیار رؤیت په صورت کي که مبیع مشتري سره هلاک شي. نو په مشتري باندې پوره ثمن واجبیږي. دغه ډول به په ذکرشوي صورت کي هم په مشتري ثاني باندې پوره ثمن لازم وي.

| |
|---|
| بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خیارعیب، |

تشريح:- د خیارعیب په صورت کي په مشتري باندې پوره ثمن نه واجبیږي. یعنی که مشتري د مبیع په عیب باندې خبرشو. بیا مبیع د مشتري سره هلاک شو. نو د عیب د برخې (حصې) په مقابله کي چې کوم ثمن وي. د مشتري د ذمې نه هغه ساقطیږي. مثلاً ثمن سل روپۍ وو. او د عیب په وجه اتیا روپۍ مالیت پاتې شو. نو شل روپۍ به د مشتري د ذمه نه ساقط شي.



... ځکه چې په خیارعیب کي د فوت شوي ... هغه به ساقطیږي. لِأَنَّهُ ... په وخت د فوت شوي برخې (حصې) په مقابله کي چې کوم ثمن وي. هغه به ساقطیږي.

حل اللغة:- ① تسلیم،سپارل، ② الفائت،فوت شوې څیز، ③ یسقط،ساقطیږي، ④ العجز،عاجز کیدل

تشريح:- دلیل دا دې چې د عیب په وجه د مبیع کوم جزء فوت شوي دي. مشتري به د بائع نه ددې د سپارلو مطالبه ... په بائع د فوت شوي جزء سپارلو نه عاجز دی. او مشتري د عیبدار مبیع ضائع کیدلو په وجه واپس کاوه نه ... په داسې صورت کي د ثمن هغه مقدار کوم چې د فوت شوي جزء په مقابله کي وي. د مشتري د ذمه نه ... یعنی مشتري به د شل روپو مقدار کم کړي. او پاته ثمن به بائع ته حواله کړي.

### کېړه په نفع خرڅولو نه روسته د واپس اخستلو حکم

| |
|---|
| قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا فرمائي. او که یوسړي کپړه واخستله فَبَاعَهُ بِرِبْحٍ ودائي د مرابحه په طور خرڅه کړله ثُمَّ اشْتَرَاهُ بیا ئې دا واخستله فَإِنْ بَاعَهُ مُرَابَحَةً نو که دا مراجبهٔ خرڅول غواړي طَرَحَ عَنْهُ كُلَّ رِبْحٍ كَانَ قَبْلَ ذَلِكَ نو ددې نه وړاندې ئې چې کومه نفع حاصل کړې ده. هغه دې پریږدي فَإِنْ كَانَ اسْتَغْرَقَ الثَّمَنَ نو که نفع پوره ثمن راګیر کړي لَمْ يَبِعْهُ مُرَابَحَةً نو دا دې په مرابحه سره نه خرڅوي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ ودا د ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی. |

حل اللغة:- ① ثوب،جامه، ② ربح،ګټه، ③ الطرح،پریخودل، ④ الاستغراق،راګیرول

تشريح:- مسئله داده. که یوسړي یو تهان واخستلو. او دا ئې په نفع خرڅ کړلو. او د بائع په ثمن باندې، او د مشتري په مبیع باندې د قبضه کاوه نه پس، بیا بائع د مشتري نه دا تهان واخستلو. او س که بائع دا په نفع خرڅول غواړي. نو ددې نه وړاندې ئې چې څومره نفع حاصل کړې ده. هغه به کم کړي. او که تیرې شوې نفع پوره ثمن راګیر کړي. نو دا په مرابحه نشي خرڅولي. دا د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې. او هم دا د امام احمد رحمه الله مذهب دې.

| |
|---|
| وَقَالَا او صاحبین رحمهما الله فرمائي يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى الثَّمَنِ الْأَخِيرِ چې دا دې په ثمن اخیر باندې په مرابحه سره خرڅ کړي. |

تشريح:- او صاحبین رحمهما الله فرمائي. چه ثمن اخیر په نفع سره خرڅولې شي. دا د امام شافعي، او امام مالك رحمه الله قول دې.

| |
|---|
| صُورَتُهُ: إِذَا اشْتَرَى ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ ددې صورت دادې. چه کله ئې یوه کپړه د لس درهمو په عوض واخستله وَبَاعَهُ بِخَمْسَةَ عَشَرَ او دا ئې د پنځلس درهمو په عوض خرڅه کړله ثُمَّ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ بیائې دا د لس درهمو په عوض واخستله فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً بِخَمْسَةٍ نودا په مرابحه سره د پنځه درهمو په عوض خرڅولې شي وَيَقُولُ قَامَ عَلَيَّ بِخَمْسَةٍ او دا به وائي. چه دا کپړه ماته په پنځه درهمه باندې پریوتې ده. |

تشريح:- ددې مسئلې صورت دادې. چه خالد د کپړې یو تهان په لس روپۍ واخستلو. او په تهان ئې قبضه اوکړله. بیا خالد دا تهان د پنځلس روپو په عوض حامد باندې خرڅ کړلو. حامد په تهان یعنی په مبیع باندې، او خالد په پنځلس روپو یعنی په ثمن باندې قبضه اوکړله. بیا خالد د حامد نه دا تهان د لس روپو په عوض واخستلو. او په دې ئې قبضه اوکړله. او حامد ته ئې لس روپۍ ورکړلې. او س که خالد دا تهان د مرابحه په طریقه خرڅول اوغواړي. نو حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خالد چې په تیره شوې بیع کي د پنځو روپو کومه نفع حاصل کړې ده. هغه به کم کړي. او په پنځو روپو به مرابحه اوکړي. او خرڅ به ئې کړي. یعنی خالد به د خرڅولو په وخت دا وائي. چه دا تهان ماته په پنځه روپۍ پریوتې دې. او دومره قدرې نفع مثلاً په دوې (دوه) روپۍ نفع باندې ئې خرڅوم. خالد به دا نه وائي. چه ما دا تهان په پنځه روپۍ اخستې دې. ګنی دا به کذب او دروغ وي.

| |
|---|
| وَلَوِ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ او که د لس درهمو په عوض ئې واخستله وَبَاعَهُ بِعِشْرِينَ مُرَابَحَةً ثُمَّ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ مرابحهٔ ئې د شل درهمو په عوض خرڅه کړله. او بیا ئې دا د لس درهمو په عوض واخستله لَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً أَصْلًا نو دا به په مرابحه سره بالکل نه خرڅوي. |

توليه نشوه.نو دسره تصرف بدل شو.يعني بيع توليه،بيع مرابحه شوه.او تصرف بدلول ناجائز دی.په دې وجه په بيع توليه کې مقدار خيانت يعني پنځوس روپۍ کمول متعين شوې.

وَفِي الْمُرَابَحَةِ لَوْلَمْ يُحَطَّ او په مرابحه کې که د خيانت مقدار کم نکړې شی تَبْقَى مُرَابَحَةً نو مرابحه به پاته کېږي وَإِنْ كَانَ يَتَفَاوَتُ الرِّبْحُ اګرچه نفع متفاوت شی فَلَا يَتَغَيَّرُ التَّصَرُّفُ نو تصرف به نه بدليږی فَأَمْكَنَ الْقَوْلُ بِالتَّخْيِيرِ او مشتری ته د اختيار ور کاوه قول ممکن شو.

**تشريح:-** خوپه بيع مرابحه کې که مقدار خيانت يعني پنځوس روپۍ کم نکړې شوې.نو بيع مرابحه د تصرف نه بغير چې څنګه وه.هم هغه شان به پاته وی.البته نفع به متفاوت شی.يعنی د مشتری ثانی خيال وو.چه مشتری اول پنځوس روپۍ نفع کړې ده.خود خيانت ښکاره کيدلو نه روسته معلومه شوه.چه مشتری اول،د مشتری ثانی نه سل روپۍ نفع اخستې ده.پنځوس روپۍ د خيانت په صورت،او پنځوس روپۍ ئې د نفع په صورت اخستې دی.نود مشتری اول ددې فريب او دهوکې ورکولوپه وجه د مشتری ثانی رضامندی فوت شوه.اود مشتری رضامندی فوت کيدلو سره مشتری ته د بيع پاته ساتلو،اود ختمولو اختيار وی.خکه مشتری ثانی ته د مرابحه په صورت کې اختيار دی.چه دې مبيع يعنی ګهړۍ د پوره ثمن په عوض واخلی.يا بيع مرابحه پريږدی.

فَلَوْهَلَكَ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّهُ نو که د واپس کاوه نه وړاندې مبيع هلاک شو أَوْحَدَثَ فِيهِ يا په دې کې داسې عيب پيدا شو مَا يَمْنَعُ الْفَسْخَ کوم چې فسخ منع کوی يَلْزَمُهُ جَمِيعُ الثَّمَنِ فِي الرِّوَايَاتِ الظَّاهِرَةِ نو په ظاهر رواياتوکې د مشتری په ذمه به پوره ثمن لازم وی.

**حل اللغة:-** ① هلک،هلاک شو، ② حدث،پيدا شو، ③ يمنع،منع کوی، ④ يلزم،لازميږی

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.که په دوې (دوه) سوه روپۍ ئې ګهړۍ واخستله.اوبيا کس ته ئې اووئيل.چه دا ګهړۍ ما په دوې (دوه) نيم سوه روپۍ باندې اخستې ده.يعنی د پنځوس روپو ئې خيانت اوکړلو.اووې وئيل.چه دا زه د پنځوس روپو په نفع يعنی په درې سوه روپۍ باندې خرڅوم.مشتری ثانی ته د اخستلو نه روسته معلومه شوه.چه مشتری اول د پنځوس روپو خيانت کړې دې.نود خيانت ښکاره کيدلو نه روسته مبيع يعنی ګهړۍ د مشتری ثانی نه ضائع شوه.يا په دې کې داسې عيب پيداشو.چه ددې په وجه دا نشی واپس کولې. نو پوره ثمن يعنی درې سوه روپۍ په مشتری ثانی باندې واجب وی.

لِأَنَّهُ مُجَرَّدُ خِيَارٍ خکه چې مشتری ته محض اختيار دې لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ چې ددې په مقابله کې ثمن نشته كَخِيَارِ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ لکه خيار روٴيت او خيارشرط.

**تشريح:-** دليل دا دې د خيانت ښکاره کيدلو نه روسته مشتری ثانی ته صرف د مبيع واپس کاوه اختيار وو.او ددې اختيار په مقابله کې د ثمن هيڅ برخه نه وی.نو هرکله چې د مبيع ضائع کيدلو په وجه مبيع واپس کول متعذرشو.نود مشتری ثانی اختيار هم ساقط شو.اود اختيار په مقابله کې چونکه د ثمن هيڅ برخه نه وی.خکه به د ثمن نه د څه کمولو اختيار هم نه وی.اوهرکله چې د ثمن نه د څه کمولو اختيار نشته.نوپه مشتری به پوره ثمن يعنی درې سوه روپۍ لازم وی.لکه څنګه چې د خيار روٴيت اوخيارشرط په مقابله کې د ثمن هيڅ برخه نه وی.يعنی د خيارشرط،يا خيار روٴيت په صورت کې که مبيع مشتری سره هلاک شی.نو په مشتری باندې پوره ثمن واجبيږی.دغه ډول به په ذکرشوی صورت کې هم په مشتری ثانی باندې پوره ثمن لازم وی.

بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خيارعيب،

**تشريح:-** د خيارعيب په صورت کې په مشتری باندې پوره ثمن نه واجبيږی.يعنی که مشتری د مبيع په عيب باندې خبرشو.بيا مبيع د مشتری سره هلاک شو.نود عيب د برخې (حصې) په مقابله کې چې کوم ثمن وی.د مشتری د ذمې نه هغه ساقطيږی.مثلا ثمن سل روپۍ وو.اود عيب په وجه اتيا روپۍ ماليت پاتې شو.نو شل روپۍ به د مشتری د ذمه نه ساقط شی.



لِأَنَّ الْمُطَالَبَةَ بِتَسْلِيمِ الْفَائِتِ خکه چې په خيارعيب کې د فوت شوی شی سپارلو مطالبه ده فَيَسْقُطُ مَا يُقَابِلُهُ عِنْدَ عَجْزِهِ نود عاجز کيدلو په وخت د فوت شوی برخې (حصې) په مقابله کې چې کوم ثمن وی.هغه به ساقطيږی.

**حل اللغة:-** ① تسليم،سپارل، ② الفائت،فوت شوې څيز، ③ يسقط،ساقطيږی، ④ العجز،عاجز کيدل

**تشريح:-** دليل دا دې چې د عيب په وجه د مبيع کوم جزء فوت شوې دې.مشتری به د بائع نه ددې د سپارلو مطالبه کوی.او بائع د فوت شوی جزء سپارلو نه عاجز دی.او مشتری د عيبدار مبيع ضائع کيدلو په وجه واپس کاوه نه عاجز دې.نو په داسې صورت کې د ثمن هغه مقدارکوم چې د فوت شوی جزء په مقابله کې وی.د مشتری د ذمه نه ساقطيږی.يعنی مشتری به د شل روپو مقدار کم کړی.او پاته ثمن به بائع ته حواله کړی

## کپړه په نفع خرڅولو نه روسته د واپس اخستلوحکم

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا فرمائی.اوکه يوسړی کپړه واخستله فَبَاعَهُ بِرِبْحٍ ودائې د مرابحه په طورخرڅه کړله ثُمَّ اشْتَرَاهُ بيائې دا واخستله فَإِنْ بَاعَهُ مُرَابَحَةً نوکه دا مراجبة خرڅول غواړی طَرَحَ عَنْهُ كُلَّ رِبْحٍ كَانَ قَبْلَ ذٰلِكَ نو ددې نه وړاندې ئې چې کومه نفع حاصل کړې ده.هغه دې پريږدی فَإِنْ كَانَ اسْتَغْرَقَ الثَّمَنَ نوکه نفع پوره ثمن راګير کړی لَمْ يَبِعْهُ مُرَابَحَةً نودا دې په مرابحه سره نه خرڅوی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ ودا د ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

**حل اللغة:-** ① ثوب،جامه، ② ربح،ګټه، ③ الطرح،پريخودل، ④ الاستغراق،راګيرول

**تشريح:-** مسئله داده.که يوسړی يو تهان واخستلو.اودا ئې په نفع خرڅ کړلو.اود بائع په ثمن باندې،اود مشتری په مبيع باندې د قبضه کاوه نه پس، بيا بائع د مشتری نه دا تهان واخستلو.اوس که بائع دا په نفع خرڅول غواړی.نو ددې نه وړاندې ئې چې څومره نفع حاصل کړې ده.هغه به کم کړی.اوکه تيرې شوې نفع پوره ثمن راګيرکړې وی.نودا په مرابحه نشی خرڅولې.دا د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دی.اوهم دا د امام احمد رحمه الله مذهب دی.

وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمايي يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى الثَّمَنِ الْأَخِيرِ چې دا دې په ثمن اخيرباندې په مرابحه سره خرڅ کړی.

**تشريح:-** او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه ثمن اخير په نفع سره خرڅولې شی.دا د امام شافعی،او امام مالک رحمه الله قول دی.

صُورَتُهُ: إِذَا اشْتَرَى ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ ددې صورت دادې.چه کله ئې يوه کپړه د لس درهمو په عوض واخستله وَبَاعَهُ بِخَمْسَةَ عَشَرَ اودا ئې د پنځلس درهمو په عوض خرڅه کړله ثُمَّ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ بيائې دا د لس درهمو په عوض واخستله فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً بِخَمْسَةٍ نودا په مرابحه سره د پنځه درهمو په عوض خرڅولې شی وَيَقُولُ قَامَ عَلَيَّ بِخَمْسَةٍ اودا به وائی.چه دا کپړه ماته په پنځه درهمه باندې پريوتې ده.

**تشريح:-** ددې مسئلې صورت دادې.چه خالد د کپړې يو تهان په لس روپۍ واخستلو.او په تهان ئې قبضه اوکړله.بيا خالد دا تهان د پنځلس روپو په عوض حامد باندې خرڅ کړلو.حامد په تهان يعنی په مبيع باندې،او خالد په پنځلس روپو يعنی په ثمن باندې قبضه اوکړله.بيا خالد د حامد نه دا تهان د لس روپو په عوض واخستلو.او په دې ئې قبضه اوکړله.او حامد ته ئې لس روپۍ ورکړلې.اوس که خالد دا تهان د مرابحه په طريقه خرڅول اوغواړی.نودحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خالد چې په تيره شوې بيع کې د پنځو روپو کومه نفع حاصل کړې ده.هغه به کم کړی.او په پنځو روپو به مرابحه اوکړی.او خرڅ به ئې کړی.يعنی خالد به دخرڅولو په وخت دا وائی.چه دا تهان ماته په پنځه روپۍ پريوتې دی.او دومره قدرې نفع مثلاً په دوې (دوه) روپۍ نفع باندې ئې خرڅوم.خالد به دا نه وائی.چه مادا تهان په پنځه روپۍ اخستې دی.ګنی دا به کذب او دروغ وی.

وَلَوِ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ اوکه دلس درهمو په عوض ئې واخستله وَبَاعَهُ بِعِشْرِيْنَ مُرَابَحَةً ثُمَّ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ مرابحة ئې د شل درهمو په عوض خرڅه کړله.او بيا ئې دا دلس درهمو په عوض واخستله لَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً أَصْلًا نودا به په مرابحه سره بالکل نه خرڅوی.

**تشریح:-** او که خالد د کپړې تهان په لس روپۍ واخستلو په دې باندې د قبضه کاوه نه روسته ئې په خالد په ثمن یعنی شل روپو باندې واخستلو، او قبضه ئې کړلو. اوس که خالد دا قبضه اوکړله. بیا خالد د حامد نه هم دا تهان د لس روپو په عوض واخستلو، او قبضه ئې کړلو. اوس که خالد دا تهان مرابحة خرڅول اوغواړي. نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ددې تهان په مرابحه باندې د خرڅولو اجازت نشته. ځکه چې په تیرشوی بیع کې خالد دلس روپو کومه نفع حاصل کړې ده. ددې د کمولو نه روسته ثمن پاتې نه کیږي. نو مرابحه به په کوم څیز کوي. ځوکه خالد دا تفصیل بیان کړي. چه دا تهان ما یوځل خرڅ کړې دې او لس روپۍ نفع مې حاصل کړې ده. اوس دوباره په لس روپۍ باندې دومره قدرې منافع اخلم. او خرڅوم ئې. نودا جائز دی.

> وَعِنْدَهُمَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى الْعَشَرَةِ فِي الْفَصْلَيْنِ (١) اود صاحبینو رحمهما الله په نیز دواړو صورتونوکې لس درهمو باندې په مرابحه سره خرڅولې شي.

**تشریح:-** اود صاحبینو رحمهما الله په نیز نفع، که ثمن ګیر کړي. اوکه ګیر نکړي. په دواړو صورتونوکې د تفصیل بیانولو نه بغیر په لس روپۍ باندې بیع مرابحه کولې شي. یعنی په لس روپو باندې نفع متعین کولې شي. او خرڅولې ئې شي.

> لَهُمَا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّ الْعَقْدَ الثَّانِي عَقْدٌ مُتَجَدِّدٌ مُنْقَطِعُ الْأَحْكَامِ عَنِ الْأَوَّلِ چې دوهم عقد یوجدید عقد دې چې ددې احکام د رومبنی بیع نه بالکل جلا دی فَيَجُوزُ بِنَاءُ الْمُرَابَحَةِ عَلَيْهِ، نوعقد ثانی په بنا (بنیاد) باندې مرابحه جائزده كَمَا إِذَا تَخَلَّلَ ثَالِثٌ لکه (مثلاً) په منځ کې دریم کس راغلې وی.

**حل اللغة:-** ① الثاني،دويم، ② منقطع،جدا، ③ شرف،نزدې، ④ السقوط،ساقطیدل

د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې. چه دویمه بیع یعنی د خالد، حامد نه د لس روپو په عوض اخستل، یو نوې عقد دې. چه ددې احکام د عقد اول نه بالکل جلا دی. او هرکله چې د عقدثانی یعنی د شراء ثانی احکام د عقداول نه جلا دی. نو په عقدثانی باندې مرابحه مبنی کولوکې هیڅ باک نشته. یعنی د عقدثانی (یعنی شراء ثانی) احکام د عقداول نه جلا دی. نو په عقدثانی باندې مرابحه مبنی کولوکې هیڅ باک نشته. یعنی په عقدثانی باندې مرابحه کولې شی. یعنې خالد په لس روپو باندې نفع اخستلې شی. او تهان خرڅولې شی. لکه مثلاً دریم سړې په مینځ کې راغلې وی. مثلاً خالدیو تهان په لس روپۍ واخستلو. اود بیع مرابحه په طریقه ئې د شل روپو په عوض حامد باندې خرڅ کړلو. بیا حامد د پنځویشت روپو په عوض په شاهد باندې خرڅ کړلو. بیا خالد د شاهد نه د لس روپو په عوض واخستلو. نو اوس که خالد په لس روپو باندې مرابحه اوکړي. اوخرڅول اوغواړي. نو بالاتفاق جائز دی. نوهم دغه ډول که خالد د حامد نه په لس روپۍ واخلي. اوپه لس روپو باندې مرابحه کول اوغواړي. نوجائز ده. یعنی په لس روپو باندې نفع اخستلې او خرڅولې شي.

> وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې أَنَّ شُبْهَةَ حُصُولِ الرِّبْحِ بِالْعَقْدِ الثَّانِي ثَابِتَةٌ، چې عقد ثانی نه د نفع د حصول شبه ثابت ده لِأَنَّهُ يَتَأَكَّدُ بِهِ بَعْدَ ځکه چې (د بیع اول نه کومه نفع حاصل شوې وه) دا په عقدثانی سره مؤکد شوه مَا كَانَ عَلَى شَرَفِ السُّقُوطِ بِالظُّهُورِ عَلَى عَيْبٍ وَالشُّبْهَةُ حالانکه عیب ښکاره کیدلو سره دا د ساقطیدلو په غاړه وو كَالْحَقِيقَةِ فِي بَيْعِ الْمُرَابَحَةِ احْتِيَاطًا او په بیع مرابحه کې احتیاطاً شبه د حقیقت پشان وی.

**تشریح:-** د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چې کومه نفع د عقداول په وجه حاصل شوې ده. یعنی کله چې خالد په لس روپۍ باندې تهان واخستلو. او په پنځلس روپۍ په حامد باندې خرڅ کړلو. نو ددې عقد په وجه خالد ته پنځه

(١) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في البحرالرائق (١١١\٦) وردالمحتار (١٧٤\١٤) وحاشية شهاب الدين (٧٦\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٥٣\١٢)-



روپۍ نفع اوشوه. او ددې نفع د حصول شبه په عقدثانی سره هم ثابت دې. یعنی هرکله چې خالد هم دا تهان د خپل مشتری یعنی حامد نه په لس روپۍ واخستلو. نو کومې پنځه روپۍ چې خالد ته په نفع کې ملاؤ شوې. ګویا په عقدثانی سره ثابت شوې. ځکه چې د عقدثانی نه وړاندې ددې د ساقطیدلو امکان وو. په دې طریقه که حامد د مبیع (یعنی د تهان) په څه عیب باندې خبرشوې وو. اود خیارعیب په وجه ئې تهان خالد ته واپس کړې وو. او خپلې پنځلس روپۍ ئې واپس اخستې وې. نو خالد ته چې کومې پنځه روپۍ نفع حاصلیدله. هغه به ساقط شوې وه. خوچه کله خالد ذکرشوې تهان دحامد نه د لس روپو په عوض واخستلو. نو پنځه روپۍ نفع د خالد لپاره مستحکم او مؤکد شوې. نو پنځه روپۍ نفع په حقیقت کې په عقداول سره حاصل شوې ده. خوچونکه په عقدثانی سره ددې استحکام شوې دې. ځکه به شبهة په عقدثانی سره هم ددې ثبوت کیږي. او هرکله چې په عقدثانی سره شبهة دا نفع یعنی پنځه روپۍ حاصل شوې دی. نودا داسې شوه. ګویا خالد د حامد نه د لس روپو په عوض د کپړې یو تهان او پنځه روپۍ اخستې دی. نود پنځو روپو په مقابله کې خو پنځه روپۍ شوې. اود کپړې تهان د پنځو روپو په عوض کې شوې. او هرکله چې د کپړې تهان د پنځوروپو په عوض کې شوې. نو خالد په پنځه روپۍ باندې مرابحه کولې شي. ځکه چې په لس روپو باندې د مرابحه کاوه په صورت کې به د خیانت شبه وی. حالانکه په بیع مرابحه کې احتیاطاً شبهٔ خیانت، د حقیقی خیانت پشان وی. نو په بیع مرابحه کې چې لکه څنګه د حقیقی خیانت نه ځان ژغورل ضروری دی. دغه ډول د شبهٔ خیانت نه هم احتراز ضروری دی.

> وَهَذَا لَمْ تَجُزِ الْمُرَابَحَةُ او هم په دې وجه داسې څیزکې مرابحه جائز نه ده فِيمَا أُخِذَ بِالصُّلْحِ کومه چې دصلح په طور اخستې شوې وی لِشُبْهَةِ الْحَطِيطَةِ ځکه چې د نرخ کمولو شبه ده. نوداسې به شي فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ اشْتَرَى خَمْسَةً وَثَوْبًا بِعَشَرَةٍ ګویا چې ده پنځه درهمه او کپړه د لس درهمو په عوض اخستې ده فَيُطْرَحُ عَنْهُ خَمْسَةٌ نو پنځه درهم به ساقطولې شي.

**حل اللغة:-** ① الحطيطة، کمیدل، ② الطرح، ساقط کیدل، ③ التحليل، په مینځ کې راتګ، ④ التاكيد، مضبوطول

**تشریح:-** هم ددې احتیاط په وجه که یوڅیز په صلح سره اخستې شوې وی. نودا په مرابحه سره خرڅول جائز نه دی. مثلاً د شاکر په قاسم باندې لس روپۍ پور دی. نو قاسم په یوه کپړه باندې صلح اوکړله. یعنی د لس روپو په ځاې ئې کپړه شاکر ته ورکړله. اوس که شاکر دا کپړه په لس روپو باندې په نفع اخستلو خرڅول اوغواړي. نوجائز نه ده. ځکه چې صلح په عامه توګه (عام طور) د نرخ په کمولو سره کیږي. نو په دې کې داشبه شوه. چه کپړه د لس روپو نه وی. بلکه د لس روپو نه د کم وی. نوددې شبه نه د بچ کیدلو لپاره دا کپړه مرابحة خرڅول جائز نه دی.

> بِخِلَافِ مَا إِذَا تَخَلَّلَ ثَالِثٌ، په خلاف ددې چې دریم کس په منځ کې راغلې وی لِأَنَّ التَّأْكِيدَ حَصَلَ بِغَيْرِهِ ځکه چې مؤکد کیدل د غیر په ذریعه سره حاصل شو.

**تشریح:-** ددې په خلاف چې کله په مینځ کې دریم سړې راغې. یعنی خالد په حامد باندې اوحامد په بل کس خرڅ کړلو. او د هغه نه خالد واخستلو. نو په دې صورت کې چې خالد ته د کومو پنځو روپو نفع شوې ده. ددې استحکام د دریم سړي په اخستلوسره شوې دې. خالد ته دا نفع په شراء ثانی سره نه ده حاصل شوې. نوهرکله چې ددې نفع ثبوت په شراء ثانی سره نه دې شوې. نود خیانت شبه هم ختمه شوه. او هرکله چې د خیانت شبه ختمه شوه. نوخالد د کپړې تهان په لس روپو باندې په مرابحه سره خرڅولې شي.

### عبدماذون د لس روپو کپړه پخپل مالک په پنځلس خرڅه کړله دمولا لپاره د مرابحه مقدار

> قَالَ فرمایي وَإِذَا اشْتَرَى الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ فِي التِّجَارَةِ ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ او که غلام ماذون له فی التجارة یو تهان د لس روپو په عوض واخستلو وَعَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِرَقَبَتِهِ حالانکه په دې غلام باندې دومره قدرې قرضه ده. چه دده ذات راګیرونکې دې فَبَاعَهُ مِنَ الْمَوْلَى بِخَمْسَةَ عَشَرَ بیا دې غلام دا تهان د خپل مولا په لاس د پنځلس روپو په عوض خرڅ کړو فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى عَشَرَةٍ نو مولا به دا تهان په لس درهمه باندې په مرابحه سره خرڅولې شي.

**تشريح:-** صورت دمسئلې دادې.كه يوغلام،، ماذون له فى التجارة،، يو تهان د لس روپو په عوض واخستلو او په غلام ماذون باندې د خلګو دومره ډيره قرضه ده.چه دا دده د رقبه پوره ماليت احاطه كوى.بيا دې غلام ماذون دا تهان خپل مولا باندې د پنځلس روپو په عوض خرڅ كړلو.نو مولا دا تهان په لس روپئ باندې مرابحةً خرڅولې شى.په پنځلس روپو باندې به د بيع مرابحه اجازت نه وى.

**وَكَذٰلِكَ اِنْ كَانَ الْمَوْلٰى اِشْتَرَاهُ** وهم دغه ډول كه مولا دا تهان اخستې وى **فَبَاعَهُ مِنَ الْعَبْدِ** بيا ئې د خپل غلام ماذون له فى التجارة په لاس د پنځلس روپو په عوض خرڅ كړې وى.

**تشريح:-** دغه ډول كه مولا يو تهان د لس روپو په عوض واخستلو.او پخپل غلام،، ماذون له فى التجارة،، ئې د پنځلس روپو په عوض خرڅ كړلو.نو غلام ماذون دا تهان په لس روپئ باندې مرابحةً خرڅولې شى.په پنځلس روپئ باندې د بيع مرابحه اجازت نشته.

**لِاَنَّ فِىْ هٰذَا الْعَقْدِ شُبْهَةَ الْعَدَمِ** ځكه چې په دې عقد كي (كوم چې د مولا او دده د ماذون غلام په مېنځ كي شوې دې) د نه كيدلو شبه ده. **بِجَوَازِهٖ مَعَ الْمُنَافِىْ** حكه چې داعقد سره د منافى جائز دې **فَاعْتُبِرَ عَدَمًا فِىْ حُكْمِ الْمُرَابَحَةِ** نود مرابحه په حكم كي دا بيع معدوم شمارلې شوې ده **وَبَقِىَ الْاِعْتِبَارُ لِلْاَوَّلِ** اود بيع اول اعتبار پاته شو.

**تشريح:-** دليل دادې.چه په دې عقد كي د غلام په مولا باندې خرڅولو كي ،اود مولا په غلام باندې خرڅولو كي د بيع دعدم جواز شبه ده.په حقيقت كي ناجائز نه ده.بلكه حقيقتاً بيع جائز ده.او حقيقتاً ځكه جائز ده.چه هركله غلام په دين محيط(چې دده پوره رقبه راګيروى) سره مقروض دې.نو غلام د پور غوښتونكو حق شو.اوهركله چې غلام د پور غوښتونكو حق شو.نو ګويا دا غلام د خپل مولا ملك پاتې نشو.بلكه د پور غوښتونكو ملك شو.او هركله چې غلام د پور غوښتونكو ملك شو.نود مولا او ددې غلام په مېنځ كي د مالك اود مملوك نسبت پاتې نشو. بلكه اجنبيت (غيريت) شو.اود دوې (دوه) اجنبى (پردو) په مېنځ كي بيع جائز وى.ځكه به د مولا اود غلام مديون په مېنځ كي بيع جائز وى.

اود بيع دعدم جواز شبه ځكه ده.چه دا بيع د منافى كيدلو باوجود جائز شوې ده.او منافى غلام د خپل مولا ملك كيدل دى.ځكه چې كوم وخت پورې پور غوښتونكى دا غلام وانخلى.تر هغه وختـه پورې به دا غلام د خپل مولا ملك وى.يا كه مولا دده قرضه اداكړى.نو بيا به هم دا دخپل مولا ملك وى.نودا داسې شوه.ګويا مولا خپل ملك پخپله اخستې دې.او په دوهم صورت كي ګويا مولا خپل ملك پخپله پخپل خان خرڅ كړې دې.او ښكاره ده.چه دا ټيك نه ده.

بهرحال غلام اود مولا په مېنځ كي دابيع اګرچه د دين محيط په وجه حقيقتاً جائز ده.خود عدم جواز شبه هم شته.او په بيع مرابحه كي چونكه د شبه نه ځان ژغورل هم ضرورى دى.ځكه په بيع مرابحه كي د غلام او مولا په مېنځ كي واقع كيدونكې دا بيع معدوم شماركړې شوې ده.اود بيع اول اعتبار شوې دې.

**فَيَصِيْرُ** نو په ړومبى صورت كي داسې شوه **كَاَنَّ الْعَبْدَ اشْتَرَاهُ لِلْمَوْلٰى بِعَشَرَةٍ فِى الْفَصْلِ الْاَوَّلِ**، ګويا غلام دا تهان د لس درهمو په عوض د مولا لپاره اخستې دې **وَكَاَنَّهٗ يَبِيْعُهٗ لِلْمَوْلٰى فِى الْفَصْلِ الثَّانِىْ** او په دوهم صورت كي ګويا غلام ماذون دا تهان د مولا لپاره خرڅ كړې دې **فَيُعْتَبَرُ الثَّمَنُ الْاَوَّلُ** نو ړومبې ثمن به معتبر وى.

**تشريح:-** اودا داسې شوه.ګويا په ړومبى صورت كښې غلام د كپړې تهان د لس روپو په عوض د خپل مولا په واسطه خرڅ كړې دې.او په دوهم صورت كي ګويا غلام دا تهان د خپل مولا لپاره خرڅ كړې دې.نو هركله چې بيع ثانى معدوم ده.او ړومبئ معتبر ده.نو مرابحه به هم په هغه ثمن معتبر وى.كوم ثمن چې په بيع اول كي ذكر دې.اوكوم ثمن چې په بيع ثانى كښې ذكر دې.په دې به بيع مرابحه جائز نه وى.اوپه بيع اول كي چونكه ثمن لس درهم دى.په دې وجه په لس درهمه باندې به د بيع مرابحه اجازت وى.

مضارب د لسو روپو كپړه بخپل مالك به پنځلس خرڅه لكړله د رب المال لپاره د مرابحه مقدار



**قَالَ** فرمائى **وَاِذَا كَانَ مَعَ الْمُضَارِبِ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ بِالنِّصْفِ** اوكه مضارب سره د نيمې نفع په شرط باندې لس درهم وى **فَاشْتَرٰى ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ** بيا مضارب يو تهان د لس درهمو په عوض واخستلو **وَبَاعَهٗ مِنْ رَبِّ الْمَالِ بِخَمْسَةَ عَشَرَ** اود رب المال په لاس ئې د پنځلس درهمو په عوض خرڅ كړو **فَاِنَّهٗ يَبِيْعُهٗ مُرَابَحَةً بِاثْنَىْ عَشَرَ وَنِصْفٍ**([1]) نو رب المال دا تهان په دولس نيم درهمه باندې په مرابحه سره خرڅولې شى.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.كه يوسړى بل كس ته د بيع مضاربت كاوه لپاره لس روپئ وركړلې.اود نيمې نفع شرط ئې اوكړلو.يعنى چې څومره قدرې نفع اوشى.هغه به درب المال او مضارب په مېنځ كي مشتركه وى.نصف به درب المال وى.او نصف به د مضارب وى.نو مضارب په دې لس روپو باندې كپړه واخستله.او په رب المال ئې په پنځلس روپئ خرڅه كړله.اوس كه رب المال دا كپړه د بيع مرابحه په طريقه خرڅول اوغواړى.نو په دولس نيمې روپئ باندې مرابحه كولې شى.په پنځلس روپو باندې مرابحه كول جائز نه دى.يعنى رب المال به دا وائى.چه دا كپړه ماته په دولس نيمې روپئ پربوتې ده.او زه به په دې باندې دومره قدرې نفع اخلم.

**لِاَنَّ هٰذَا الْبَيْعَ** ځكه چې دا بيع **وَاِنْ قُضِىَ بِجَوَازِهٖ عِنْدَنَا عِنْدَ عَدَمِ الرِّبْحِ** اګرچه زموږ په نيز د عدم نفع په وخت ددې د جواز حكم شوې دې.

**حل اللغة:-** ① قضى،فيصله كړې،② الربح،ګټه،③ الاستفادة،حاصلول،④ الانعقاد،منعقد كيدل

**تشريح:-** دليل دادې.چه د بيع مرابحه بنا (بنياد) د خيانت اود شبه خيانت نه په بچ كيدلو باندې دې.اود رب المال ددې كپړې په پنځلس روپو باندې په بيع مرابحه سره خرڅولو كي شبه خيانت موجود ده.ځكه په مال مضاربت كي كه نفع اوشوه.نود مضارب په رب المال باندې،اود رب المال په مضارب باندې خرڅول بالاتفاق جائز دى.اوكه هيڅ نفع حاصل شوې نه وى.نود مضارب په رب المال باندې،اود رب المال په مضارب باندې خرڅول،

**خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** د امام زفر رحمه الله خلاف دې **مَعَ اَنَّهُ اشْتَرٰى مَالَهٗ بِمَالِهٖ** سره ددې چې رب المال خپل مال د خپل مال په عوض اخستې دې.

**تشريح:-** د امام زفر رحمه الله په نيز ناجائز دى.خوزموږ په نيز يعنى دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دى.

د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه بيع د،، مبادلة المال بالمال،، نوم دې.اودا به هغه وخت متحقق كيږى.چه كله سړې د خپل مال تبادله د بل كس مال سره اوكړى.او كه خپل مال سره د خپل مال مبادله اوكړى.نو بيع نه متحقق كيږى.او دلته كي هم دا صورت دې.ځكه چې كله مضارب دلس روپو تهان واخستلو.او په رب المال ئې خرڅ كړلو.نوګويا رب المال خپل مال د خپل مال په عوض واخستلو.ځكه چې تهان هم د رب المال،مال دې.او پنځلس روسيدې د كوم په عوض ئې چې اخستې دې.هغه هم د رب المال،مال دې.نود مضارب او رب المال په مېنځ كي به دا بيع موجود نه وى.

**لِمَا فِيْهِ مِنِ اسْتِفَادَةِ وِلَايَةِ التَّصَرُّفِ** ځكه چې په دې كي دولايت تصرف حصول دې **وَهُوَ مَقْصُوْدٌ وَالْاِنْعِقَادُ يَتْبَعُ الْفَائِدَةَ** اوهم دا مقصود دې.او په انعقاد د عقدسره فائده هم لګيدلې ده.

**تشريح:-** زموږ په نيز دجواز وجه داده.چه دا بيع په يوه فائده باندې مشتمل دې.او فائده داده.چه كله رب المال لس روپئ مضارب ته وركړلې.نو ددې لس روپو نه د رب المال ولايت تصرف منقطع شوې وو.يعنى لس روپئ مضارب ته د سپارلو نه روسته رب المال ته په دې كي د تصرف كاوه هيڅ حق پاته نه وو پاتې شوې.خو كله چې رب المال په دې لس روپو باندې اخستې شوې د كپړې تهان د پنځلس روپو په عوض واخستلو.نو اوس د رب المال ولايت

[1]) القول الراجح هو هذا قول علماء الثلاثة رحمهم الله كذا فى فتح القدير(١٣١\٦) ومنحة الخالق (١١٣\٦) نقلاً عن القول الراجح (٥٤\١٢)-

تصرف حاصل شو. اود بيع نه تصرف مقصود وي. نو هركله چې دا بيع په فائده باندې مشتمل دې. نو دا به منعقد وي. ځکه چې په انعقاد د بيع سره فائده حاصلول مطلوب وي.

فَفِيهِ شُبْهَةُ الْعَدَمِ او خو په دې کې د نه کيدلو شبه ده أَلَا تَرَى آيا نه ګورې أَنَّهُ وَكِيلٌ عَنْهُ فِي الْبَيْعِ الْأَوَّلِ مِنْ وَجْهٍ چې مضارب په بيع اول کې من وجه د رب المال وکيل دې.

**تشريح:-** خو ددې باوجود د امام زفر رحمه الله د بيان شوي دليل وجه د عدم جواز شبه ده. اود عدم جواز شبه په دې وجه هم ده. چه په بيع مضاربت کې مضارب،، من وجه،، د رب المال وکيل وي. يعنى مضارب د خپل خان لپاره هم عمل کوي. اود رب المال لپاره هم عمل کوي. هم دا وجه ده. چه نفع د مضارب او رب المال دواړو لپاره وي. په خلاف د وکيل، چه دې صرف د مؤكل لپاره عمل کوي. او نفع هم خالص د مؤكل لپاره وي. نو چونکه مضارب من وجه د رب المال وکيل وي. په دې وجه به د مضارب او رب المال په مينځ کې بيع جائز نه وي. لکه څنګه چې د وکيل او مؤكل په مينځ کې بيع جائز نه وي.

فَاعْتُبِرَ الْبَيْعُ الثَّانِي عَدَمًا فِي حَقِّ نِصْفِ الرِّبْحِ نود نيمې نفع په حق کې به بيع ثانى معدوم شمارلې کيږي.

**تشريح:-** نو هركله چې د مضارب او رب المال په مينځ کې د بيع د عدم جواز شبه ده. نو بيع ثانى يعنى د رب المال د پنځلس روپو په عوض مضارب نه تهان اخستل، د نيمې نفعې يعنى د دوې (دوه) نيمو روپو په حق کې معدوم شمارلې شي. ځکه چې دوې (دوه) نيمې روپۍ د رب المال حق دې. نود خيانت د شبه نه بچ کيدلو لپاره به دوې (دوه) نيمې روپۍ د ثمن نه کمولې شي. او چونکه په اصل ثمن يعنى په لس روپو کې اود مضارب په برخه يعنى په دوې (دوه) نيمو روپو کې هيڅ شبه نشته. په دې وجه رب المال په دولس نيمو روپو باندې بيع مرابحه کولې شي. يعنى دا وئيلې شي. چه دا کپړه ماته په دولس نيمې روپۍ پريوتې ده. او په دې باندې دومره قدرې نفع اخلم. اودا تهان خرڅوم.

**اخستې وينځه د څه اثر (مثلا ړوندوالي ،وطي كول) وغيره نه روسته د مرابحه مقدار**

قَالَ فرمايي وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً او که يوکس وينځه واخستله فَاعْوَرَّتْ بيا دا کانړۍ (ړنده) شوه أَوْ وَطِئَهَا يا ئې ددې سره وطى اوکړله وَهِيَ ثَيِّبٌ حالانکه دا ثيبه وه يَبِيعُهَا مُرَابَحَةً نودا په مرابحه باندې خرڅولې شي وَلَا يُبَيِّنُ او بيان به نه کوي.

**حل اللغة:-** ① الجارية، وينځه، ② اعورت، ړنده شوه، ③ الاحتباس، بنديز، ④ يقابل، مقابله کوي

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې. که يوکس صحيح سلامت وينځه واخستله. بيا دا وينځه په څه آسمانى آفت، يا پخپل څه فعل سره، يا پخپله (هسې بيسه) کانړۍ شوه. يعنى ددې د يوې سترګې نظر ختم شو. يا وينځه ثيبه وه. نو مشترى دې سره وطى اوکړله. اود وطى په وجه په دې کې څه نقصان هم پيدا نشو. نو مشترى که دا وينځه په بيع مرابحه سره خرڅول اوغواړي. نو خرڅولې شي. او په ده باندې دا بيانول هم واجب نه دى. چه دا وينځه صحيح سالمه وه. ما سره کانړۍ شوې ده.

لِأَنَّهُ لَمْ يَحْتَبِسْ عِنْدَهُ شَيْئًا يُقَابِلُهُ الثَّمَنُ، ځکه چې دده سره داسې شۍ ګير نه دې. چه ددې په مقابله کې ثمن وي لِأَنَّ الْأَوْصَافَ تَابِعَةٌ لَا يُقَابِلُهَا الثَّمَنُ ځکه چې اوصاف تابع دى. ددې په مقابله کې ثمن نه وي.

**تشريح:-** دليل دادې. چه مشترى خپل خان سره څه شۍ نه دې بند کړې. چه د هغې په مقابله کې څه ثمن جوړيږي. ځکه چې وړاندې تيرشوى دى. چه د مبيع سالم کيدل، او عيب دار کيدل، د اوصافوځنې دى. او اوصاف د ذات تابع وي. ددې په مقابله کې ثمن نه وي. بلکه د اصل اوذات په مقابله کې ثمن وي. او اصل شۍ يعنى وينځه موجود ده. نود وصف سلامت په فوت کيدلوسره به د ثمن هيڅ برخه نشى کمولې. او هرکله چې د ثمن څه برخه کمه نکړې شوه. نو مشترى د بيانولو نه بغير په پوره ثمن باندې مرابحه کولې شي.



وَلَوْ فَاتَتْ قَبْلَ التَّسْلِيمِ او هم په دې وجه که د سپارلو نه وړاندې ستر که هلاک شوه لَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نود ثمن څخه به هيڅ نه ساقطيږي.

**تشريح:-** هم داوجه ده. چه مشترى ارخ ته مبيع سپارلو سره، که بائع سره د مبيع څه وصف فوت شو. نو مشترى ته د ثمن څه برخه کمولو حق نه وي. البته مشترى ته د اخستلو، اود نه اخستلو اختيار وي. دغه شان چې مشترى سره د مبيع څه وصف فوت شو. نو په ثمن کې به کمى نشى کولې. بلکه مشترى ته په پوره ثمن باندې د بيع مرابحه کاوه اجازت دې.

وَكَذَا مَنَافِعُ الْبُضْعِ لَا يُقَابِلُهَا الثَّمَنُ اوهم دغه ډول د بضع د منافع په مقابله کې ثمن نه وي.

**حل اللغة:-** ① البضع، فرج، ② ينقص، نقص پيدا کوي، ③ الوطئ، جماع، ④ المنافع، جمع د نفعة، فائده

**تشريح:-** دغه ډول منافع د بضع هم چونکه مال نه دې. په دې وجه ددې په مقابله کې هم ثمن نه وي. اود مشترى ثيبه وينځې سره د وطى کاوه په وجه به دوينځې د ثمن نه څه برخه نشى کمولې. بلکه مشترى تعبه په پوره ثمن د مرابحه کاوه اجازت وي.

وَالْمَسْأَلَةُ فِيمَا اودا مسئله په داسې صورت کې ده إِذَا لَمْ يَنْقُصْهَا الْوَطْءُ چې وينځې ته وطى هيڅ نقصان رسولې نه وي.

**تشريح:-** خوياد ساتئ چې دا د وطئ کولو بيانولو ته په هغه صورت کې اړتيا نشته چې په دې وطى باندې په وينځه کې څه نقصان نه وي پيدا شوې اوکه بالفرض نقصان په کې پيدا شوى وي مثلاً که وينځه باکره وي. ددې صورت تفصيل په راروان متن کې راځي

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ او په ړومبۍ مسئله کې د ابويوسف رحمه الله نه نقل دى أَنَّهُ لَا يَبِيعُهُ مِنْ غَيْرِ بَيَانٍ[1] چې وينځه به د بيان نه بغير نه خرڅوى كَمَا إِذَا احْتَبَسَ بِفِعْلِهِ لکه (مثلاً) د مشترى په فعل سره که څه شۍ بند شوې وى وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او هم دا د امام شافعى قول دې

**تشريح:-** د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دې چه په اوله مسئله کې يعنى کله ئې چې وينځه واخستله اود مشترى په قبضه کې دا کانړۍ شوه. نو مشترى د بيانولو نه بغير دا وينځه په بيع مرابحه سره نشى خرڅولې. بلکه دا تفصيل به بيانوى. چه ما په صحيح سالم وينځه باندې قبضه کړې وه. خوچه ماسره راغله، نو کانړۍ شوه. لکه مثلاً مشترى پخپل فعل سره دوينځې څه جزء فوت کړې. اودا بند کړې. نو په ده باندې بيانول ضرورى دى. هم دا د امام شافعى او امام زفر رحمه الله قول دې. د امام شافعى رحمه الله په نيز بيانول ځکه ضرورى دى. چه ددوى په نيز د اوصاف په مقابله کې ثمن وي. عيب که په آسمانى آفت سره پيدا شوې وي. اوکه د بنده په فعل سره پيدا شوې وي. اود امام زفر رحمه الله په نيز ځکه ضرورى دې. که مشترى ثانى ته دا معلومه شى. چه مشترى اول دا وينځه د عيب نه بغير اخستې ده. اوکوم ثمن ئې چې ذکر کړې دې. ددې په عوض ئې اخستې دې. نود مشترى اول لپاره په دې ثمن باندې نفع اخستل جائز نه دى. چه تر کومه ئې د عيب دار کيدلو نه روسته متعين نکړې. ددې نه معلوميږي. چه د امام زفر رحمه الله په نيز په مرابحه سره خرڅولو لپاره ددې تفصيل بيانول ضرورى دى.

[1]) القول الراجح هوهذا قول أبى يوسف رحمه الله كذا فى فتح القدير(٦\١٣٢) وردالمحتار(٤\١٧٦) والبحر الرائق (٦\١١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\٥٥)-

### د وينځې د زخم جرمانه وصولولو نه روسته د مرابحه مقدار

فَأَمَّا إِذَا فَقَأَ عَيْنَهَا بِنَفْسِهِ که مشتري پخپله ددې سترګه ړنده کړله. أَوْ فَقَأَهَا أَجْنَبِيٌّ يا يواجنبي سترګه ړنده کړله فَأَخَذَ أَرْشَهَا او مشتري دده نه جرمانه وصول کړله لَمْ يَبِعْهَا مُرَابَحَةً نو دې وينځه مرابحه باندې نشي خرڅولې حَتَّى يُبَيِّنَ ترڅو چې بيان کړي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. که مشتري د وينځې سترګه پخپله ړنده کړله. يا بل چا ړنده کړله. که د مشتري په حکم وي. او که دده د حکم نه بغير وي. او مشتري د هغه نه ددې جرمانه هم وصول کړله. نو ددې وينځې په مرابحه سره د خرڅولو لپاره د سترګې ړندولو ذکر کول واجب دي.

لِأَنَّهُ صَارَ مَقْصُودًا بِالْإِتْلَافِ ځکه چې په هلا کاوه سره وصف مذکور مقصود شو فَيُقَابِلُهَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو ددې په مقابله کې د ثمن نه برخه وي.

حل اللغة:- ① الاتلاف،هلاکول، ② الثمن،پيسې، ③ العذرة،بکارت، ④ جزء،حصه

تشريح:- دليل دا دې. چه د سترګې هلا کاوه په وجه د کتلو وصف مقصود شو. او د اوصاف مقصوده په مقابله کې ثمن وي. نو مشتري چې د وينځې سترګه ړنده کړله. نو ګوياچه د وينځې يوجزء ئې خان سره اوساتلو. او د بل چا د ړندولو په صورت کې چونکه مشتري جرمانه وصول کړې ده. او د بدل خپل خان سره ساتل، د مقصود عليه جزء خپل خان سره ساتل دي. او په کوم صورت کې چې مشتري د مبيع څه جزء خپل خان سره اوساتي. نو په هغه صورت کې د بيانولو نه بغير مرابحه جائز نه وي. په دې وجه په دې صورت کې د سترګې ړندولو ذکر کول ضروري دي.

وَكَذَا إِذَا وَطِئَهَا او هم دغه ډول که وينځې سره ئې وطی اوکړله وَهِيَ بِكْرٌ حالانکه دا باکره وه.

تشريح:- دغه ډول که مشتري وطی اوکړله. په داسې حال کې چې وينځه باکره ده. نو بياهم د بيانولو نه بغير مشتري له د مرابحه کاوه اجازت نشته.

لِأَنَّ الْعُذْرَةَ جُزْءٌ مِنَ الْعَيْنِ ځکه چې د بکارت پرده د وينځې په ذات کې يو جزء دې يُقَابِلُهَا الثَّمَنُ چې ددې په مقابله کې ثمن دې وَقَدْ حَبَسَهَا حالانکه دا جزء مشتري ګير کړې دې.

تشريح:- دليل دا دې چې د بکارت پرده د وينځې د ذات يوجزء دې. چه ددې په مقابله کې ثمن وي. حالانکه دا جزء مشتري خپل خان سره ساتلې دې. په دې وجه د مرابحه کاوه په وخت به دا ضرور بيانوي. چه د دومره قدرې ثمن په عوض باکره وه. ددې دبکارت پرده ما زائل کړې ده.

### په کپړه کښې د عيب پيداکيدلو نه روسته د مرابحه مقدار

وَلَوِ اشْتَرَى ثَوْبًا وکه چا کپړه واخستله فَأَصَابَهُ قَرْضُ فَأْرٍ بيا دا مږې اوشلوله أَوْ حَرْقُ نَارٍ يا اور اوسوزوله يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً مِنْ غَيْرِ بَيَانٍ نو د بيانولو نه بغير دا په مرابحه سره خرڅولې شي.

حل اللغة:- ① ثوب،جامه، ② القرض،شليدل، ③ فار،مږ، ④ الحرق،سوزيدل

تشريح:- مسئله داده. که يوکس يوه کپړه واخستله. او بيا مږې دا کټ کړله. يا اور اوسوزوله. نو مشتري د بيانولو نه بغير د بيع مرابحه په طريقه باندې خرڅولې شي. يعنې دا بيانول واجب نه دي. چه دا کپړه د اخستلو په وخت صحيح سالم وه. بيا روسته مږې کټ کړې ده. يا اور سوزولې ده.

وَلَوْ تَكَسَّرَ بِنَشْرِهِ وَطَيِّهِ وکه ددې په کولاوولو او خوړولو کې دا اوشليدله لَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً نو دا (مرابحة) نشي خرڅولې حَتَّى يُبَيِّنَ ترڅو چې بيان کړي وَالْمَعْنَى مَا بَيَّنَّاهُ او ددې وجه هم هغه ده. کومه چې موږ بيان کړله.

حل اللغة:- ① الكسر،شليدل\ماتيدل، ② النشر،کولاوهل ③ ،النسيئة،قرض ④ ،ربح،ګټه



آ دليل وړاندې تير شوې دې. چه د مبيع د اوصاف په مقابله کې ثمن نه وي. خو کله چې اوصاف مقصود شي. نو ددې په مقابله کې ثمن وي. نو په کلاوولو يا راغونډولو سره چې کله کپړه اوشليدله. نو چونکه ددې کپړې په شليدلو کې د مشتري فعل ته دخل دې. په دې وجه د هلا کاوه په وجه د کپړې، وصف سلامت، مقصود شو. او کله چې وصف مقصود شو. نو ددې په مقابله کې به ثمن ضرور وي. او هر کله چې د وصف په مقابله کې ثمن دې. نو د بيانولو نه بغير مرابحة خرڅول جائز نه دي.

### د قرضو غلام په نفع خرڅولو نه روسته د مشتري د ردکولو حکم

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى غُلَامًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ نَسِيئَةً وکه يوکس يو غلام د زر درهمو په عوض په پور واخستلو فَبَاعَهُ بِرِبْحِ بيا ئې دا د سل روپو په نفع باندې خرڅ کړو وَلَمْ يُبَيِّنْ او د پور خرڅولو حال ئې بيان نکړو فَعَلِمَ الْمُشْتَرِي بيا مشتري ته دا خبره معلومه شوه فَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ نو که غواړي. واپس دې کړي وَإِنْ شَاءَ قَبِلَ وکه غواړي. نو قبول دې کړي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. چه يوسړي يو غلام د زر روپو په عوض پور واخستلو. بيا ده د سل روپو نفع په عوض ئې د مرابحه په طريقه په نغدو خرڅ کړلو. او دا ئې بيان نکړل. چه ما د زرو روپو په عوض پور اخستې وو. بيا مشتري ثاني ته معلومه شوه. چه مشتري اول يعنې زما بائع په قرضو اخستې واخستله. او د يوولس سوه روپو په عوض ئې د يوولس سوه روپو نغدو په عوض قبول دې. نو مشتري ثاني ته به اختيار وي. چه دې بيع مرابحه رد کړي. يا ئې د يوولس سوه روپو نغدو په عوض قبول کړي. امام شافعي او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دي.

لِأَنَّ لِلْأَجَلِ شَبَهًا بِالْمَبِيعِ ځکه چې ميعاد د بيع مشابه دې أَلَا يُرَى آيا نه ګورې أَنَّهُ يُزَادُ فِي الثَّمَنِ لِأَجْلِ الْأَجَلِ چې د ميعاد په وجه په ثمن کې اضافه کولای شي وَالشُّبْهَةُ فِي هَذَا مُلْحَقَةٌ بِالْحَقِيقَةِ او شبه په دې باب کې حقيقت سره لاحق ده. نو داسې شوه.

حل اللغة:- ① الاجل،نيتيه، ② يزاد،زياتولې شي، ③ ملحقة،مولښتی (پيوست) ه، ④ الشبهة،شک

تشريح:- دليل دادې. چه نيتيه د بيع مشابه ده. ځکه د نيتې په وجه ثمن زياتولې شي. مثلاً يوڅيز په نغدو په اته سوه روپۍ ملاويږي. نو هم دغه شئ په قرضو په زر روپۍ ملاويږي. ګويا د قرضو د نيتې په وجه په ثمن کې دوې (دوه) سوه روپۍ اضافه اوشوه. او په باب مرابحه کې احتياطاً شبه، دحقيقت سره لاحق (مولښتی) کولې شي. نو دلته کې نيته چې شبهه بيع ده. حقيقت بيع سره لاحق ګولې شي. اوس داسې شوه.

فَصَارَ كَأَنَّهُ اشْتَرَى شَيْئَيْنِ ګويا ده دوې (دوه) شيان واخستل وَبَاعَ أَحَدَهُمَا مُرَابَحَةً بِثَمَنِهِمَا او په دې دواړو کې ئې يو ددې دواړو په ثمن باندې مرابحه سره خرڅ کړو.

تشريح:- ګويا چې مشتري اول د زر روپو په عوض دوې (دوه) شيان اخستې دي. يو غلام، او دوهم شئ نيتيه، او په دې کې يو يعنې غلام د سل روپو په نفع اخستلو، د دواړو د ثمن په عوض ئې خرڅ کړې دې. يعنې زر روپۍ د غلام او نيتې دواړو ثمن دې. خوده د زر روپو په عوض صرف غلام خرڅ کړلو. او د سل روپو ئې زياتې نفع واخستله. او دا حرام او خيانت دې.

وَالْإِقْدَامُ عَلَى الْمُرَابَحَةِ يُوجِبُ السَّلَامَةَ عَنْ مِثْلِ هَذِهِ الْخِيَانَةِ، حالانکه په مرابحه باندې اقدام کول د داسې قسمه خيانت نه سلامتيا واجبوی فَإِذَا ظَهَرَتْ يُخَيَّرُ كَمَا فِي الْعَيْبِ نو هر کله چې خيانت ښکاره شو. نو مشتري ته به اختيار ورکولې شي. لکه ځنګه چې په عيب کې کيږي.

حل اللغة:- ① الاقدام،وړاندې کيدل، ② يوجب،پيدا کوی، ③ ظهرت،ښکاره شو، ④ يخير، اختيارورکولې شي

تشريح:- او وړاندې تيرشوی دی. چه په بيع مرابحه کې خيانت او شبهٔ خيانت دواړو نه احتراز ضروري دې. نو په دې مسئله کې په بيع مرابحه باندې اقدام کول، د داسې قسمه خيانت نه ځان ژغورل واجبوی. خوچه کله مشتري اول

بیان نکړل.او روسته خیانت ښکاره شو.نو مشتری ثانی ته اختیار دی.چه بیع واپس کړی.یا دا د یوولس سوه روپو نغدو په عوض قبول کړی.لکه څنګه چې په مبیع کي د عیب ښکاره کیدلو نه روسته مشتری ته اختیار وی.

**پور غلام په نغد خرڅولو نه روسته مشتري ثاني سره هلاکیدل اود ثمن وجوب**

**وَإِنِ اسْتَهْلَكَهُ** اوکه مشتری ثانی مبیع هلاك کړو **ثُمَّ عَلِمَ** بیا ده ته معلومه شوه **لَزِمَهُ بِأَلْفٍ وَمِائَةٍ** نو په مشتري ثاني به یوولس سوه روپۍ لازم وی.

**حل اللغة:-** ① الاستهلاک،هلاکول، ② الاجل،نیتیه، ③ولا،تولیه کول، ④یبین،بیانوی

**تشریح:-** مسئله داده.که یوکس یو غلام د زر روپو په عوض په پور واخستلو.بیا ئې دا د یوولس سوه روپو په نغدو د بیع مرابحه په طریقه خرڅ کړلو.او مشتری اول د خرڅول په وخت دا بیان نکړل.چه دا ما په عوض اخستي دي.بیا دا غلام مشتری ثانی هلاك کړلو.یعنی خرڅ ئې کړلو.یا ئې آزاد کړلو.یا ئې مړ کړلو. ددې نه روسته مشتری ثانی ته معلومه شوه.چه مشتری اول دا غلام په قرضو اخستي وو.او په ما ئې په نقدو خرڅ کړې دې.نو په مشتري ثاني به یوولس سوه روپۍ ور کاوه لازم وی.

**لِأَنَّ الْأَجَلَ لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ** ځکه چې د میعاد په مقابله کي د ثمن هیڅ برخه نه وی.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې په حقیقت کي د نیتې په مقابله کي ثمن نه وی.البته د خیانت شبه ضرور ده.نود شبهٔ خیانت په وجه ده ته د فسخ کولواختیار ورکړې شوې دې.خو فسخ کول به هغه وخت ممکن وی.چه کله مبیع موجود وی.او کله چې مبیع موجود نه وی.نود میعاد په مقابله کي به د ثمن هیڅ برخه نشی ساقطولې.

**د بیانولو نه بغیر په مشتري ثاني باندې په تولیه سره خرڅول اود واپس کولوحکم**

**قَالَ: فَإِنْ كَانَ وَلَّاهُ إِيَّاهُ** فرمائي.اوکه مشتری اول، دوهم مشتری ته په بیع تولیه باندې ورکړې وی **وَلَمْ يُبَيِّنْ** او بیان کړې ئې نه وی **رَدَّهُ إِنْ شَاءَ** که غواړي.نودا دې واپس کړي.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یوکس یوغلام د زر روپو په عوض په قرضو واخستلو.بیا په بل سړی باندې د زر روپو په عوض د بیع تولیه په طریقه خرڅ کړلو.اودا ئې بیان نکړل.چه ما د زر روپو په عوض پور اخستې وو.روسته مشتری ته معلومه شوه.چه مشتری اول دا غلام په پور اخستې وو.او په مانې په نغدو خرڅ کړې دې.نو په دې صورت کي به مشتري ثاني ته اختیار وی.که غواړي.نو غلام دې واپس کړي.او خپل ثمن دې واپس واخلي.

**لِأَنَّ الْخِيَانَةَ فِي التَّوْلِيَةِ مِثْلُهَا فِي الْمُرَابَحَةِ** ځکه چې په بیع تولیه کي خیانت کول په بیع مرابحه کي دخیانت کاوه پشان دي **لِأَنَّهُ بِنَاءٌ عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ** ځکه چې په بیع تولیه هم په ثمن اول باندې مبنی ده.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې په بیع تولیه کي د خیانت اود شبهٔ خیانت نه بچ کیدل داسې ضروري دی.لکه څنګه چې په بیع مرابحه کي دخیانت او شبهٔ خیانت نه بچ کیدل ضروري دی.او ددې وجه داده.چه بیع تولیه په ثمن اول باندې مبنی وی.نه په دې باندې زیاتوالې کیږی.او نه په دې کي کمې کیږی.او ثمن اول زر روپۍ دی.نو بیع تولیه به هم د زر روپو په عوض کیږی.د میعاد په وجه به د ثمن هیڅ برخه نشی کمولې.خوچونکه د میعاد په وجه د خیانت شبه پیدا شوې ده.ځکه به مشتری ته اختیار حاصل وی.که زړه ئې غواړي.د زر روپو په عوض به بیع تولیه پاته ساتی.اوکه زړه ئې غواړي.نودا دې فسخ کړي.

**وَإِنْ كَانَ اسْتَهْلَكَهُ** اوکه مشتری ثانی مبیع هلاك کړې وی **ثُمَّ عَلِمَ** بیا ده ته معلومه شوه **لَزِمَهُ بِأَلْفٍ حَالَّةٍ** نو په ده به دزر روپو نغدو په عوض بیع لازم وی **لِمَا ذَكَرْنَاهُ** د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې.

**تشریح:-** اوکه مشتری ثانی مبیع هلاك کړلو. بیا ده ته معلومه شوه.چه مشتری اول دا غلام پور اخستې وو.نو په مشتري ثاني باندې به دا بیع تولیه د زر روپو نغدو په عوض لازم وی.دلیل وړاندې تیرشوې دې.چه د میعاد په مقابله کي په حقیقت کي د ثمن هیڅ برخه نه وی.ځکه د میعاد په وجه په ثمن کي هیڅ برخه نشی کمولې.اود بیع



هلاکیدلو په وجه بیع تولیه فسخ کول هم ممکن نه دی.په دې وجه به دا بیع تولیه د زر روپو نغدو په عوض په مشتري ثاني باندې لازم وی.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ** اود ابویوسف رحمه الله نه نقل دی **أَنَّهُ يَرُدُّ الْقِيمَةَ** چې مشتري ثاني دې قیمت واپس کړي **وَيَسْتَرِدُّ كُلَّ الثَّمَنِ** او پوره ثمن دې واپس واخلي.

**حل اللغة:-** ① یرد،واپس کوی، ② یسترد،واپس اخلی، ③ الاستیفاء،پوره اخستل، ④ الزیف،کهوټه

**تشریح:-** دحضرت امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه د بیع هلاکیدلو نه روسته دې مشتري ثاني د مبیع قیمت واپس کړي.اود مشتري اول نه دې پوره ثمن واخلي.د مبیع قیمت د ثمن نه زیات هم کیدلې شي.او کم هم کیدلې شي.او برابر هم کیدلې شي.ددې دلیل دادې.چه د شي قیمت د شي قائم مقام وی.نو قیمت واپس کول داسې دی.لکه عین شي واپس کول.نو کله چې مشتري ثاني هلاك شوې مبیع واپس کړلو.نودې به خپل ورکړې شوې پوره ثمن وصول کوی.

**وَهُوَ نَظِيرُ** اودا حکم ددې مسئلې مثال دې **مَا إِذَا اسْتَوْفَى الزُّيُوفَ مَكَانَ الْجِيَادِ** چې یوسړی (خپل مدیون نه) د کره دراهمو په ځائې کهوټه دراهم وصول کړل **وَعَلِمَ بَعْدَ الْإِنْفَاقِ** اود خرج کاوه نه روسته معلومه شوه **وَسَنُبَيِّنُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى** اودا مسئله به ان شاءالله عنقریب معلومه شي.

**تشریح:-** او ددې مثال دادې.چه دیوسړي په بل باندې لس درهم اعلی پور دی.اتفاق سره پور غوښتونکی د قرضداری نه ردی او کهوټه درهم وصول کړل.او خرج ئې کړل.روسته پور غوښتونکی ته دا معلومه شوه.نودې د کهوټه او ردی دارهمو په ځائې ددې مثل واپس کړي.اود قرضداری نه دې اعلی او اصلی دراهم واخلي.

**وَقِيلَ يُقَوَّمُ بِثَمَنٍ حَالٍّ وَبِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ** او وئیلی شوی دی.چه مبیع به په نغد ثمن او پور ثمن باندې اندازه کولای شي **فَيَرْجِعُ بِفَضْلِ مَا بَيْنَهُمَا** نو ددې دواړو په منځ کي چې کوم تفاوت دې.هغه دې واپس واخلي.

**حل اللغة:-** ① حال-في الحال ② -منجم-قسطوار- ③ معتاد-عادت- ④ فضل-زیاتی

**تشریح:-** د فقیه ابوجعفر رحمه الله قول دې.چه مبیع به په نغد ثمن او پور ثمن باندې اندازه کړې شي.او ددې دواړو په مینځ کي چې کوم تفاوت وی.مشتری ثانی دې هغه واپس کړي.مثلاً مشتری اول غلام د زر روپو په عوض په پور واخستلو.حالانکه په نغدو دده قیمت اته سوه روپۍ دی.نو مشتری ثانی چاچه د بیع تولیه په طریقه د زر روپو نغدو په عوض اخستې دې.دوې (دوه) سوه روپۍ د مشتری اول نه واپس واخلي.

**وَلَوْ لَمْ يَكُنِ الْأَجَلُ مَشْرُوطًا فِي الْعَقْدِ** اوکه په عقد کي میعاد مشروط نه وی **وَلَكِنَّهُ مُنَجَّمٌ مُعْتَادٌ** خود قسطوار ادا کاوه عادت دې.

**تشریح:-** دا ذکر شوی واړه اقوال هغه وخت دی.چه کله د مشتری اول او دده د بائع په مینځ کي د میعاد شرط لګولې شوې وی.خوکه د زر روپو په عوض ئې غلام واخستلو.اود میعاد هیڅ شرط ئې اونه لګولو.البته د خلګو عادت دادې.چه په قسطونو ثمن ادا کوی.

**قِيلَ لَا بُدَّ مِنْ بَيَانِهِ** او وئیلی شوی دی.چه ددې بیانول هم ضروری دی **لِأَنَّ الْمَعْرُوفَ كَالْمَشْرُوطِ** ځکه چې معروف د مشروط په مرتبه کي وی.

**تشریح:-** اوس که ده د مرابحه یا تولیه په طریقه دا غلام د زر روپو نغدو په عوض خرڅ کړلو.نود بعض حضراتو قول دې.چه په مشتری اول باندې ددې بیانول هم واجب دی.ځکه چې کوم شي په عرف سره ثابت وی.هغه په منزله د مشروط وی.ګویا په قسطونو ثمن ادا کول هم مشروط دی.او هرکله چې مشروط دی.نو ددې بیانول ضروری دی.

**وَقِيلَ يَبِيعُهُ** او وئیلی شوی دی.چه خرڅ دې کړي **وَلَا يُبَيِّنُهُ** او نه دې بیانوی **لِأَنَّ الثَّمَنَ حَالٌّ** ځکه چې ثمن نغد دې.

تشریح:- او بعض حضراتو فرمائیلي دي.چه ددې بیانول واجب نه دي.ځکه چې د میعاد نه ذکر کاوه په وجه ثمن نغد شمارلې شي.اوهرکله چې ثمن نغد دې.نو په نغدوخرڅولو کې هیڅ حرج نشته.

**په مشتری ثانی باندې په بیع تولیه سره خرڅول چې ثمن معلوم نه وي.د بیع حکم**

قَالَ: وَمَنْ وَلّٰى رَجُلًا شَيْئًا فرمائي.اوکه یوسړی څه شئ د بیع تولیه په طور ( داسې) ورکړو بِمَا قَامَ عَلَيْهِ چې په څومره ماته پریوتې دي.( د هغې په عوض ئې خرڅوم) وَلَمْ يَعْلَمِ الْمُشْتَرِيْ بِكَمْ قَامَ عَلَيْهِ او مشتری ته معلومه نه ده.چه په څومره کې پریوتې دي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بیع فاسد ده لِجَهَالَةِ الثَّمَنِ ځکه چې ثمن مجهول دې.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی څه سامان واخستلو.او په بل سړی ئې د بیع تولیه په طریقه خرڅ کړلو.اودا ئې اووئیل.چه دا سامان په څومره ماته پریوتې دي.زه ئې هم په دومره قدرې عوض باندې خرڅوم.خو مشتری ثانی ته دا معلومه نه ده.چه مشتری اول ته په څومره باندې پریوتې دي.نو په داسې صورت کې دابیع فاسد ده.ځکه چې په دې صورت کې ثمن مجهول دې.اود ثمن مجهول کیدل بیع فاسد کوی.ځکه به په دې صورت کې بیع فاسد وي.

فَإِنْ أَعْلَمَهُ الْبَائِعُ يَعْنِيْ فِي الْمَجْلِسِ بیا که بائع دې په مجلس کې خبر کړو فَهُوَ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ نو مشتری ته اختیار دې.که غواړی.وادې خلی وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ که غواړی.ترک دې کړی لِأَنَّ الْفَسَادَ لَمْ يَتَقَرَّرْ ځکه چې فساد اوس مضبوط شوې نه دي فَإِذَا حَصَلَ الْعِلْمُ فِي الْمَجْلِسِ نو هرکله چې په مجلس کې علم حاصل شو جُعِلَ كَابْتِدَاءِ الْعَقْدِ نو د ابتداء عقد پشان اوګرځولې شو.

حل اللغة:- ① اعلم-پوه کړو-② الخيار-اختیار-③ الاخذ-اخستل-④ الترک-پریخودل

تشریح:- خوکه بائع یعنی مشتری اول،مشتری ثانی ته په مجلس کې د ثمن مقدار بیان کړلو.نودا بیع به جائز وي.البته مشتری ثانی ته به اختیار وي.که زړه ئې غواړی.نودا دې واخلی.اوکه زړه ئې غواړی.نودا دې پریږدی.
①بیع ځکه جائز ده.چه دمجلس د نه بدلیدلو په وجه اوسه پورې فساد مستحکم شوې نه دې.نو کله چې په آخر کې د مجلس کې د ثمن مقدار معلوم شو.ځکه چې د یومجلس واړه ساعتونه ( او لمحات) د یوساعت په مرتبه کې وي.نو هرکله چې د یو مجلس واړه ساعتونه د یوساعت په مرتبه کې دی.نود مجلس اول او آخر واړه برابر دی.یعنی لکه څنګه چې په اول د مجلس کې د ثمن مقدار معلومیدلو په صورت کې بیع جائز کیږی.دغه ډول په آخر د مجلس کې معلومیدلو په صورت کې به هم بیع جائز وي.

وَصَارَ كَتَأْخِيْرِ الْقَبُوْلِ إِلٰى آخِرِ الْمَجْلِسِ او داسې شوه.لکه آخر د مجلس پورې په قبول کې تاخیر کول.

تشریح:- ددې مثال داسې دې.لکه مثلا یوکس اووئیل. «بعت» مادا سامان په دومره باندې خرڅ کړلو. دوهم کس د مجلس په آخر کې «اشتریت» اووئیل.یعنی مشتری په آخر د مجلس کې قبول اوکړلو.نوجائز دی.نو لکه څنګه چې د مجلس آخره پورې په قبلولو کې تاخیر معاف دې.دغه ډول د ثمن مقدار معلومیدلو کې هم د مجلس آخره پورې تاخیر معاف دې.

وَبَعْدَ الْاِفْتِرَاقِ قَدْ تَقَرَّرَ اود جداکیدلو نه روسته فساد مضبوط شو فَلَا يَقْبَلُ الْإِصْلَاحَ ځکه به دا اصلاح نه قبلوی وَنَظِيْرُهُ بَيْعُ الشَّيْءِ بِرَقْمِهِ او ددې مثال څه شئ په دې باندې د لیکلی شوی رقم په عوض خرڅول دی إِذَا عَلِمَ فِي الْمَجْلِسِ په دې شرط چې مجلس کې علم اوشو وَإِنَّمَا يَتَخَيَّرُ او مشتری ته به اختیار ځکه وي لِأَنَّ الرِّضَا لَمْ يَتِمَّ قَبْلَهُ چې د ثمن معلومیدلو نه وړاندې رضامندی پوره شوې نه ده لِعَدَمِ الْعِلْمِ ځکه چې ده ته د ثمن علم نه دې شوې فَيَتَخَيَّرُ ځکه به ده ته اختیار وی كَمَا فِيْ خِيَارِ الرُّؤْيَةِ لکه څنګه چې په خیار رؤیت کې دی.

حل اللغة:- ① الافتراق-یوبل نه جدا کیدل- ② رقم-نښه-③ يتخير-اختیارور کولې شی-④ يتم-پوره کیږی



تشریح:- اوکه دمجلس نه جداکیدلو نه روسته د ثمن مقدار معلوم شو.نو بیع به جائز نه وي. ددې مثال داسې دې.چه یو سوداګر پخپل سامان باندې قیمت اولیکی.یا څه نشان مقرر کړی.اوس ده یوکس ته اووئیل چه کوم قیمت لیکلی شوې دې.ددې په عوض ئې خرڅوم.مشتری قبول کړلو.خو مشتری ته د لیکلی شوی قیمت علم نشته.ددې علم صرف بائع ته دې.اوس که په مجلس د بیع کې مشتری ته ددې علم اوشو.نو بیع به جائز وی. خومشتری ته به د نه اخستلو اختیار هم وي.او اختیار به ځکه وي.چه د ثمن مقدار معلومیدلو نه وړاندې دمشتری رضامندی نه ده پوره شوې.او کله چې د مشتری رضامندی نه ده پوره شوې.نو بیع هم نه ده پوره شوې.اود بیع پوره کیدلو نه وړاندې مشتری ته اختیار وی.چه دې ئې واخلی.یا ئې پرېږدی.ځکه به په دې صورت کې مشتری ته اختیارحاصل وي.لکه مثلاً یوکس د کتلو نه بغیر څه شئ واخستلو.نود کتلو نه روسته مشتری ته دخپل خیار رؤیت لاندې ددې شئ اخستلو،اود نه اخستلو اختیار وی.

**منقولي یا محولي ځیز د قبضه نه بغیر په بل کس خرڅول**

فَصْلٌ: وَمَنِ اشْتَرٰى شَيْئًا مِمَّا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ اوکه یوکس په منقولات او محولات کې څه شئ واخستلو لَمْ يَجُزْ لَهُ بَيْعُهُ نود مشتری لپاره ددې خرڅول جائز نه دی حَتّٰى يَقْبِضَهُ تردې چې په دې باندې قبضه اوکړی.

حل اللغة:- ① ينقل-نقل کیدلې شی-② يتحول-ګرځیدې شی- ③ الانفساخ-فسخ کیدل-④ الغرر-دهوکه

تشریح:- مصنف رحمه الله په دې ځائې کې دا فصل ځکه ذکر کړلوچه په دې کې کوم مسائل ذکرکولی شی هغه د مرابحه او تولیه د قبیلې ځنې نه دی.خوچونکه دا مسئلې د مرابحه او تولیه پشان یو زیاتی قید سره مقید دی.ځکه ئې دا مسائل د بیع تولیه او مرابحه نه روسته په مستقل فصل کې ذکر کړی دی.

صورة المسئلة که یوکس څه ځیزمنقولی واخستلو.نو ترکومه پورې چې مشتری په دې قبضه اونکړی. مشتری لپاره ددې خرڅول جائز نه دی.یعنی که مبیع د منقوله ځیزونو ځنې وی.نو په دې باندې د قبضه کاوه نه بغیر مشتری لپاره دا په بل خرڅول جائز نه دی.د امام محمد رحمه الله په نیز د قبضه کاوه نه وړاندې هبه، صدقه وغیره نور تصرفات جائز نه دی.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنْ بَيْعِ ځکه چې رسول الله ﷺ دداسې شئ د بیع نه منع فرمائیلې ده مَا لَمْ يُقْبَضْ (1) په کوم چې قبضه نه ده شوې.

تشریح:- د عدم جواز لپاره دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ د غیرمقبوض بیع نه منع فرمائیلې ده.د حکیم بن حزام رضی الله عنه روایت الفاظ دادی. «لاتبيعن شيئاً حتي تقبضه» رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه اې حکیم بن حزام! ته هیڅ شئ مه خرڅوه.تردې چې په دې باندې قبضه اوکړې.دا روایت او ددې پشان نور روایاتو کې د طعام اود غیرطعام هیڅ تفصیل نشته.بلکه د غیرمقبوض بیع نه مطلقاً منع شوې ده.که مبیع طعام وی.اوکه غیرطعام وی.

وَلِأَنَّ فِيْهِ غَرَرَ انْفِسَاخِ الْعَقْدِ عَلٰى اعْتِبَارِ الْهَلَاكِ اوځکه چې په دې کې د هلاکت په اعتبارکولوسره د عقد فسخ کاوه دهوکه ده.

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه په بیع باندې د قبضه کاوه نه وړاندې ددې په خرڅولو کې د عقدفسخ کیدلو دهوکه ده.په دې طریقه چې مثلا حامد د خالد نه غلام واخستلو.او په دې باندې د قبضه کاوه نه وړاندې حامد په شاهد باندې خرڅ کړلو.حالانکه دا غلام خالد سره هلاک شو.نودا عقدبیع به فسخ وی.ځکه کومه بیعه چې د حامد او خالد په منځ کې وه.هغه فسخ ده.نو ثابته شوه.چه د قبضه نه وړاندې د حامد په شاهد باندې خرڅول سراسر دهوکه ده.او په کوم بیع کې چې دهوکه وی.هغه شرعاً ممنوع ده.ځکه به دا بیع هم ناجائز اوممنوع وی.

(1) من حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما أخرجه أبوداود فى البيوع باب ۶۵ رقم ۳۴۹۹ وأحمد فى المسند (۱۹۱/۵) والحاكم فى المستدرك (۴۰/۲)_

## د بيع العقار قبل القبض حكم

**وَيَجُوزُ بَيْعُ الْعَقَارِ قَبْلَ الْقَبْضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ**[1] او غير منقوله جائيداد د قبضه نه وړاندې خرڅول د شيخينو رحمهما الله په نيز جائزدى.

**حل اللغة:-** ① العقار-مځكه - ② الرجوع -واپس كيدل- ③ الاعتبار-قياس - ④ الاطلاق-مطلق كيدل

**تشريح:-** ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائى.چه د شيخينو رحمهما الله په نيز د غيرمنقوله څيزونو بيع د قبضه كاوه نه وړاندې جائز ده.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ** او امام محمد فرمايي **لَا يَجُوزُ** چې دا بيع جائز نه ده

**تشريح:-** په ذكرشوې مسئله كي دامام محمد رحمه الله مذهب دا دې چې غيرمنقول شئ هم د قبضه كاوه نه وړاندې خرڅول جائز نه دى.

**رُجُوعًا إِلَى إِطْلَاقِ الْحَدِيثِ** هغوى د اطلاق حديث اړخ ته رجوع كوى.

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله دليل د حديث «نهى عن بيع مالم يقبض» مطلق كيدل دى.يعنى لفظ د ،،ما،، شئ منقوله او غيرمنقوله دواړو ته عام دې.دغه ډول په حديث «لا تبيعن شيئاً حتى تقبضه» لفظ دشئ دواړو ته عام دې.نو ددې دواړوحديثونو نه معلومه شوه.چه د قبضه كاوه نه وړاندې نه دشئ منقول بيع جائز ده.اونه د شئ غيرمنقول بيع جائز ده.

**وَاعْتِبَارًا بِالْمَنْقُولِ** او په منقول باندې قياس كوى.فرمائى.چه جائز نه ده.

**تشريح:-** دوهم دليل قياس دې.يعنى منقوله شيان په غيرمنقوله څيزونو باندې قياس شوى دى.چه لكه څنګه د قبضه نه وړاندې د منقوله شئ بيع جائز نه ده.دغه ډول د غيرمنقوله څيزونو بيع هم جائز نه ده.اود دواړو په مينځ كي علت جامعه د بيع غيرمقبوض كيدل دى.

**وَصَارَ كَالْإِجَارَةِ** اود اجاره پشان شو.

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چه د غيرمنقوله جاندادونو بيع د اجاره پشان ده.يعنى لكه څنګه چې غيرمنقوله جانداد،كور،مځكه وغيره د قبضه كاوه نه وړاندې اجاره باندې وركول جائز نه دى.دغه ډول ددې د قبضه كاوه نه وړاندې خرڅول هم جائز نه دى.

**وَلَهُمَا** اود شيخينو رحمهما الله دليل دادې **أَنَّ رُكْنَ الْبَيْعِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ**، چې ركن د بيع د خپل اهل نه پخپل محل كي صادر شوې دې **وَلَا غَرَرَ فِيهِ**،اوپه دې كي څه دهوكه هم نشته **لِأَنَّ الْهَلَاكَ فِي الْعَقَارِ نَادِرٌ**څكه چې هلاكيدل په غيرمنقول كي نا آشنا دى.

**حل اللغة:-** ① صدر-صادرشو ② غرر-دهوكه ③ العقار-مځكه ④ نادر-ناشنا

**تشريح:-** د شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه د بيع ركن يعنى ايجاب اوقبول ددې د اهل يعنى د بالغ عاقل نه صادرشوې دې.اود بيع محل يعنى په مال مملوك كي واقع شوې دې.اود قبضه كولونه وړاندې دغيرمنقوله څيزونو بيع كي څه دهوكه هم نشته.څكه چې د غيرمنقوله جانداد هلاكيدل،نادر دى.او نادر كالمعدوم ى.ددې هيڅ اعتبار نه كيږي.نو هركله چې اركان د بيع ددې د اهل خلګو نه صادرشوى دى.اود بيع واقع كيدل په داسې شئ شوې ده.كوم

[1]) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(١٣٨\٦) والكفاية (١٣٨\٦، ١٣٩) والدرالمختار(١٨١\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٥٦\٢)-



چي د بيع محل كيدلې شي.يعني مبيع مال مملوك دې.او څه دهوكه هم نشته.نود بيع په جواز كي څه شبه ده.په دې وجه موږ اووئيل چه دغيرمنقوله جانداد بيع د قبضه كاوه نه وړاندې جائز ده.

**بِخِلَافِ الْمَنْقُولِ** په خلاف د منقول.

**تشريح:-** په خلاف د اشياء منقوله،چه د قبضه كاوه نه وړاندې ددې په بيع كي دهوكه ده.څكه چې ددې هلاكيدل غيرنادر دى.

**وَالْغَرَرُ الْمَنْهِيُّ عَنْهُ** او دهوكه كوم چې ممنوع ده.داده **غَرَرُ انْفِسَاخِ الْعَقْدِ** په كومه دهوكه كي چې د عقد فسخ كيدلو يره وي.

**تشريح:-** دا د دې يوسوال خواب دې.سوال دادې.چه د قبضه كاوه نه وړاندې دغيرمنقوله جانداد بيع كي هم دهوكه ده.په دې طريقه چې څوك د استحقاق دعوه اوكړي.اومبيع غيرمنقوله واخلي.خواب ددې خواب دادې.چه په حديث كي د كومې دهوكې نه منع شوې ده.دا هغه دهوكه ده.چه په هغې كي د عقداول فسخ كيدلو يره وى.حالانكه جانداد غيرمنقوله،كور،مځكه هروخت د قبضه كاوه لپاره موجود دى.په جانداد غيرمنقوله كي د عقداول فسخ كيدلو هيڅ يره نشته.

**وَالْحَدِيثُ مَعْلُولٌ بِهِ عَمَلًا** او ذكرشوې حديث معلول دې **بِدَلَائِلِ الْجَوَازِ** د جواز په دلائلو باندې رجوع كاوه سره.

**تشريح:-** د حديث «نهى عن بيع مالم يقبض» د اطلاق خواب د شيخينو رحمهما الله د اړخه دادې.چه د كتاب الله،سنت رسولﷺ،او اجماع امت د درې وارو عموم د قبضه كاوه نه وړاندې د منقول اوغيرمنقول دواړو د بيع په جواز باندې دلالت كوى.① د الله تعالى ارشاد دې. ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا﴾ ② اوپه حديث كي دى. «يا معشر التجار ان الشيطان والاثم يحضران البيع فشوبوا بيعكم بالصدقة» اې د سوداګرو ډلې! شيطان اوګناه د بيع په وخت دواړه موجود وى.نوتاسو خپلې بيع صدقه سره ملاؤ كړئ.يعنى څه صدقه كوئ.③ او اجماع داده.چه د نبى كريمﷺ د بعثت په وخت به خلګو اخستل خرڅول كول.نبى كريمﷺ په دوى باندې څه نكير نه دې فرمائيلې.بلكه دوى نې په دې عمل باندې ثابت اوساتل.اوهم په دې باندې د امت اجماع ده.بهرحال دا درې واړه دليلونه د خپل عموم په وجه د منقول اوغيرمنقول دواړو د بيع په جواز باندې دلالت كوى.د قبضه نه وړاندې هم او د قبضه كاوه نه روسته هم،

**وَالْإِجَارَةُ قِيلَ** او په اجاره كښې وئيلې شوى دى **عَلَى هَذَا الْخِلَافِ** چې په دې كي هم اختلاف دې.

**تشريح:-** دا عبارت د امام محمد رحمه الله د قياس خواب دې.حاصل دخواب دادې.چه اجاره مقيس عليه جوړول ټيك نه دى.څكه چې په اجاره كي هم هغه اختلاف دې.كوم چې په بيع كي دې.يعنى كه يوكس كور واخستلو.نومشترى لپاره په دې باندې د قبضه كولونه وړاندې دا په اجاره باندې وركول،د امام محمد رحمه الله په نيز ناجائز دى.اود شيخينو رحمهما الله په نيز جائز دى.نو هركله چې د بيع پشان اجاره هم مختلف فيه ده.نو بيع په اجاره باندې قياس كول څنګه درست دى.

**وَلَوْ سُلِّمَ** او كه اومنلې شى **فَالْمَعْقُودُ عَلَيْهِ فِي الْإِجَارَةِ الْمَنَافِعُ** نو په اجاره كي معقود عليه منافع وى **وَهَلَاكُهَا غَيْرُ نَادِرٍ** او د هغې هلاكيدل نا آشنا نه دى.

**تشريح:-** اوكه دا اومنلې شى.چه د قبضه كولونه وړاندې اجاره بالاتفاق ناجائز ده.اوهم په دې فتوى ده.نو په دې صورت كي به خواب داوى.چه اجاره نوم دې. د تمليك منافع، يعنى په اجاره كي منافع معقود عليه وى.اود منافع هلاكيدل نادر نه دى.بلكه د شئ منقول پشان هلاكيدل غالب دى.حاصل داچه منافع د هلاكيدلو په احتمال كي د منقول پشان دى.نولكه څنګه چې د قبضه كاوه نه وړاندې د شئ منقول بيع جائز نه ده.دغه ډول به اجاره هم جائز نه وى.

**په کیل او وزن سره اخستلو نه روسته د مشتري ثاني لپاره دکیل او وزن نه بغیر د تصرف حکم**

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى مَكِيلًا مُكَايَلَةً فرمائي.اوکه یوکس څه مکیلي شئ په کیل سره واخستلو أَوْ مَوْزُونًا مُوَازَنَةً یا ئې موزوني شئ په وزن سره واخستلو فَاكْتَالَهُ بیائي دا کیل کړو أَوِ اتَّزَنَهُ یا ئې دا وزن کړو ثُمَّ بَاعَهُ مُكَايَلَةً أَوْ مُوَازَنَةً بیا ئې دا په کیل یا وزن سره خرڅ کړو لَمْ يَجُزْ لِلْمُشْتَرِي مِنْهُ أَنْ يَبِيعَهُ وَلَا أَنْ يَأْكُلَهُ نود مشتري ثاني لپاره ددې خرڅول یا خوړل جائز نه دی حَتَّى يُعِيدَ الْكَيْلَ وَالْوَزْنَ تردې چې د کیل یا وزن اعاده اوکړي.

حل اللغة:- ① مکایلة-په تول سره-② موازنة-په وزن سره- ③ الاکل-خوړل ④ الاعادة-راګرځول

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوکس څه مکیلي شئ:مثلاً غنم یا اوربشې د کیل په شرط سره واخستل.مثلاً دا ئې اوونیل.چه ما دا غنم د سلو روپو په عوض په دې شرط سره واخستل.چه دا لس قفیزه دی.یائې څه موزوني شئ مثلاً اوسپنه یا سره زر ئې د وزن په شرط سره واخستل.مثلاً دا ئې اوونیل.چه ما د سلو روپو په عوض دا اوسپنه په دې شرط واخستله.چه دا لس منه ده.حاصل داچه مکیلي یا موزونوی شئ ئې په اندازه سره وانخستلو.بلکه د کیل یا وزن په شرط سره ئې واخستل.بیامشتري دا کیل کړل.او وائې خستل. یا ئې وزن کړل.او وائې خستل بیا په مبیع باندې دقبضه کاوه نه روسته مشتري دا د کیل یا وزن په شرط سره خرڅ کړل.نو مشتري ثاني ته په دې مبیع کې د تصرف کاوه اجازت دی.تردې چې مشتري ثاني دوباره کیل یا وزن اوکړي.یعني مشتري ثاني ته د کیل یا وزن کاوه نه وړاندې په مبیع کې د تصرف اجازت نشته.چه نه ئې خرڅولې شي.اونه ئې خوړلې شي.حاصل داچه لکه څنګه مشتري اول خپل خان دپار کیل یا وزن کړې وو.دغه ډول به مشتري ثاني هم خپل خان لپاره کیل یا وزن کوي.د امام شافعي،امام مالك،او امام احمد رحمهم الله هم دا قول دي.

{لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعِ الطَّعَامِ خکه چې رسول الله ﷺ دغلې د بیع نه منع فرمائیلې ده حَتَّى يَجْرِيَ فِيهِ صَاعَانِ:تردې چې په دې کې دوې (دوه) پیمانې جاري شي صَاعُ الْبَائِعِ،یوه د بائع پیمانه وَصَاعُ الْمُشْتَرِي}(١) او دویمه د مشتري پیمانه.

حل اللغة:① صاعان-تثنیه د صاع،پیمانه-② یجری-جاري کیږي-③ یزید-زیاتیږي④-التحرز-خان ساتل

تشریح:- دلیل د حضرت جابر رضي الله عنه حدیث «أن النبي ﷺ نهى عن بيع الطعام حتى يجري فيه صاعان صاع البائع وصاع المشتري» دې.یعني،،رسول الله ﷺ د غلې د بیع نه منع فرمائیلې ده.تردې چې په دې کې دوې (دوه) خله صاع جاري نکړې شي.یوخل د بائع صاع،او دوهم خل د مشتري صاع،، په حدیث کې د بائع نه مراد مشتري اول دې.اود مشتري نه مراد مشتري ثاني دې.یعني چې کله مشتري اول خپل خان لپاره کیل یا وزن اوکړي.نو هله ئې په بل کس باندې خرڅولې شي.یا ئې خوړلې شي.د حدیث منشاء ( مقصد) بالکل دا نه دې.چه په بیع واحد کې یوخل بائع کیل یا وزن اوکړي.او په دوهم خل دده مشتري کیل یاوزن اوکړي.خکه چې په دې باندې د ټولو اتفاق دې.چه عقدواحد دوې (دوه) خله د کیل یاوزن محتاج نه وي.

وَلِأَنَّهُ يُحْتَمَلُ أَنْ يَزِيدَ عَلَى الْمَشْرُوطِ اوخکه چې مکیلي او موزوني شئ په مشروط مقدار باندې د زیاتوالي احتمال لري وَذَلِكَ لِلْبَائِعِ او زیاتي مقدار د بائع دې وَالتَّصَرُّفُ فِي مَالِ الْغَيْرِ حَرَامٌ اود غیر په مال کې تصرف (چونکه) حرام دي. فَيَجِبُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ په دې وجه ددې نه بچکیدل واجب دی.

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه په کیلي یاوزني شئ کې احتمال دې.چه شاید دا دمشروط مقدار نه زیات وي.یعني چې کله مشتري اول کیل یا وزن اوکړلو.نو شاید ده پخپل کیل یا وزن کې دهوکه خوړلې وي.اوخومره قدرې مبیع

(١) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه في التجارات باب ٣٧ رقم ٢٢٢٨ وابن أبي شيبة في المصنف (١٩٧/٧) والدارقطني في سننه (٨/٣) رقم ٢٤ والبيهقي في السنن الكبرى (٥١٦/٥) رقم ١٠٧٠٠ وفي معرفة السنن والآثار رقم ٣٤٦٣_



نې چې مقرر کړي دي.ددې نه زیات وي.اوښکاره ده.چه دا زیاتوالې د بائع یعني د مشتري اول مال دې.اود بل په مال کې چونکه تصرف کول حرام دی.په دې وجه د مشتري ثاني لپاره په دې کې د تصرف کاوه نه خان ژغورل واجب دی.اودا احتمال هغه وخت لرې کیدلې شي.چه کله مشتري ثاني پخپله کیل یاوزن اوکړي.او اطمینان حاصل کړي. ددې دلیل نه معلومه شوه.چه مشتري ثاني د خپل بائع یعني د مشتري اول په کیل یاوزن باندې اکتفاء اونکړي.بلکه پخپله دده لپاره هم کیل یاوزن کول ضروري دي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ مُجَازَفَةً په خلاف ددې چې دا په اندازې سره خرڅ کړي لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَهُ خکه چې زیاتوالې د مشتري لپاره دې.

حل اللغة:① المجازفة-اټکل\اندازه- ② الثوب-جامه-③ المذارعة-په ګز سره ناپ کول-④ القدر-اندازه

تشریح:- خوکه مکیلي یاموزوني شئ ئې په اندازه سره واخستلو.نود ناپ تول نه وړاندې د مشتري لپاره تصرف کول جائز دی.اوس ددې دوې (دوه) صورتونه دی.یودا چې یوسړې د غنمو یو ډهیري صرف په اندازه سره د سلو روپو په عوض واخستلو.بیا ده په بل باندې په اندازه سره خرڅ کړلو نو په دې صورت کې نه مشتري اول ته د کیل یاوزن ارتیا دې.اونه مشتري ثاني ته ارتیا دې خکه چې په دې صورت کې د غنمو د ډیري مقدار متعین کولو څه ارتیا نشته.بلکه په ډیري کې چې څومره قدرې غنم وي.هغه به واړه مبیع شمارلې کیږي.

او دوهم صورت دادې.چه یوسړې کیل یا وزن اوکړلو او غنم ئې واخستل.مثلاً په سل روپئ ئې لس منه غنم واخستل.او مشتري وزن کړل.او په دې ئې قبضه اوکړله.بیا ئې صرف په اندازه سره دا غنم خرڅ کړل.مثلاً دائې اوونیل.چه زه دا ثمن د دومره قدرې ثمن په عوض خرڅوم.نومشتري ثاني په دې غنموکې د تصرف کاوه لپاره د وزن محتاج نه دې.بلکه د وزن کاوه نه وړاندې په دې کې تصرف کولې شي.خکه چې دا غنم کوم ئې چې دلس منو په خیال خرڅ کړي دی.که واقعي دا د لس منو نه زیات وي.نودا زیاتوالې هم دمشتري ثاني لپاره دې.خکه چې د غنمو کوم ډیرې مشارالیه دې.دا واړه ډیرې د مبیع کیدلو په وجه دمشتري ثاني ملك دې.نومشتري ثاني به پخپل ملك کې تصرف کونکې وي.که په ډیري کې لس منه غنم وي.اوکه ددې نه زیات وي.

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الثَّوْبَ مُذَارَعَةً، اوپه خلاف د دې چې کپړه په ګز باندې وپلوري لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَهُ خکه چې زیاتد د ده لپاره دي إِذِ الذَّرْعُ وَصْفٌ فِي الثَّوْبِ خکه چې ذراع په کپړه کې وصف دي.

تشریح:- دغه ډول که د کپړې یو تهان ئې د ګزونو په شرط سره خرڅ کړلو مثلاً دا ئې اوونیل چه دا لس ګزه تهان د سل روپو په عوض خرڅوم.نود ناپ کاوه نه وړاندې مشتري لپاره تصرف کول جائز دی.خکه چې ذراع (ګزونه) په کپړه کې وصف دې.او وصف د مبیع تابع وي.په دې وجه که تهان د لس ګزو په خائې دولس ګزه شو نودا زیاتوالې به دمشتري لپاره وي.د بائع لپاره به نه وي.اوهرکله چې زیاتوالې د مشتري لپاره دې.نود بل په مال کې تصرف کول نه لازمیږي. حالانکه د ناپ تول نه وړاندې تصرف کول خکه ناجائز وو.چه د ناپ تول نه وړاندې په تصرف کولوکې د بل په مال کې د تصرف کاوه احتمال دې.

بِخِلَافِ الْقَدْرِ په خلاف د مقدار

تشریح:- په خلاف د مقدار،خکه چې په مکیلات اوموزونات کې مقدار وصف نه وي.بلکه اصل وي.په دې وجه مکیلي اوموزوني مبیع که د مشروط مقدار نه زیات شو.نودا زیاتوالې به د مشتري لپاره نه وي.بلکه د بائع لپاره به وي.نوکه په دې صورت کې د کیل یا وزن نه وړاندې مشتري ته د تصرف اجازت ورکړې شي.نود بل په مال کې به تصرف کول لازم شي.اودا ناجائز دي.

وَلَا مُعْتَبَرَ بِكَيْلِ الْبَائِعِ قَبْلَ الْبَيْعِ اود بیع نه وړاندې د بائع ناپ کول معتبر نه دی وَإِنْ كَانَ بِحَضْرَةِ الْمُشْتَرِي.اګرچه د مشتري ثاني په موجودګئ کې وي.

حل اللغة:① الاعتبار-معتبر کیدل-② الحضرة-موجودګی-③ الصاع-پیمانه-④ التسلیم-سپارل

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی.چه د بیع ثاني نه وړاندې د بائع یعنی د مشتری اول کیل کول معتبر نه دی.اګرچه ده د مشتري ثاني په موجودګئ کي کیل کړې وی.یعنی د هغه سړی په موجودګئ کي ئې کیل کړې وی.کوم چې روسته مشتری ثاني دې.

لِأَنَّهُ لَيْسَ صَاعَ الْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِي ځکه چې دا د بائع یا مشتری صاع نه دې وَهُوَ الشَّرْطُ حالانکه هم دا شرط دې.

تشریح:- ددې وجه داده.چه حدیث «نهى عن بيع الطعام.....الخ» کي د بائع اومشتری صاع یعنی کیل یاوزن کول شرط دی.اودا نه د بائع صاع دې.اونه د مشتری صاع دې.ځکه چې د بائع اومشتری تحقق د عقدبیع نه روسته کیږی.حالانکه تراوسه پورې عقدبیع دسره موجود نه دې.اوهرکله چې عقدبیع موجود نه دې.نو بائع اومشتری هم موجود نشو.اوهرکله چې بائع اومشتری موجود نشو.نودا صاع به نه د بائع وی.او نه د مشتری.ځکه چې معتبر د بائع یامشتری صاع وی.د بل چا نه وی.

وَلَا بِكَيْلِهِ بَعْدَ الْبَيْعِ بِغَيْبَةِ الْمُشْتَرِي اود عقدبیع نه روسته د مشتری په غیرموجودګئ کي د بائع ناپ کول هم معتبر نه دی.

تشریح:- اوکه بائع یعنی مشتری اول دعقدثاني نه روسته د مشتری ثاني په غیرموجودګئ کي کیل اوکړلو.نودا هم معتبر نه دې.

لِأَنَّ الْكَيْلَ مِنْ بَابِ التَّسْلِيمِ ځکه چې کیل کول د سپارلو د قبیلې ځنې دی لِأَنَّ بِهِ يَصِيرُ الْمَبِيعُ مَعْلُومًا ځکه چې ددې په وجه مبیع معلومیږی وَلَا تَسْلِيمَ او سپارل نه کیږی إِلَّا بِحَضْرَتِهِ مګر د مشتری په موجودګئ کي.

تشریح:- دلیل دا دی چې کیل اوشی.نو مبیع سپارلې کیږی.اود کیل په ذریعه مبیع ځکه سپارلې کیږی.چه په کیل او ناپ کول سره مبیع معلومیږی.اودا خبره منلې شوې ده.چه سپارل د مشتری په موجودګئ کي کیږی.دده په غیرموجودګئ کي نه کیږی.په دې وجه دمشتری ثاني په غیرموجودګئ کي کیل کول به معتبر نه وی.

وَلَوْ كَالَهُ الْبَائِعُ بَعْدَ الْبَيْعِ بِحَضْرَةِ الْمُشْتَرِي اوکه بائع د عقدبیع نه روسته د مشتری په موجودګئ کي کیل اوکړو.فَقَدْ قِيلَ نو ونیلی شوی دی لَا يُكْتَفَى بِهِ لِظَاهِرِ الْحَدِيثِ، فَإِنَّهُ أَعْتَبَرَ صَاعَيْنِ چې د ظاهرحدیث په وجه دې په دې باندې اکتفاء نه کوی فانه اعتبر صاعین.ځکه چې د دوې (دوه) ناپونو اعتبار شوې دې.

حل اللغة: ① یکتفی-اکتفاء کولې شی-② صاعین-تثنیه د صاع،پیمانه-③ التحقق-ثبوت-④ صار-اوګرځیده

تشریح:- اوکه بائع یعنی مشتری اول د بیع ثاني نه روسته د مشتری ثاني په موجودګئ کي یوځل کیل اوکړلو.نود بعض حضراتو د قول مطابق به صرف په دې باندې اکتفاء نشی کیدلې.بلکه د مشتری ثاني لپاره په دوهم ځلی کیل کول ضروری دی.ځکه چې د ظاهر حدیث «حتي يجري فيه صاعان» نه معلومیږی.چه دوې (دوه) صاعه معتبر دی.یو صاع د بائع یعنی د مشتری اول،او دوهم صاع د مشتری ثاني.

وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يُكْتَفَى بِهِ او صحیح داده.چه په دې باندې اکتفاء اوکړی لِأَنَّ الْمَبِيعَ صَارَ مَعْلُومًا بِكَيْلٍ وَاحِدٍ ځکه چې مبیع په یوکیل سره معلوم شو وَتَحَقَّقَ مَعْنَى التَّسْلِيمِ اود سپارلو معنی هم متحقق شوه.

تشریح:- خو صحیح خبره داده.چه په ذکرشوی صورت کي یوځل کیل کاوه باندې اکتفاء کول جائز دی.ځکه چې په یوځل کیل کاوه سره مبیع هم معلوم شو.اومشتری ثاني چونکه موجود دې.په دې وجه دده په ا‌ړخ سپارل هم متحقق شو.اود مشروط مقدار نه د مبیع زیاتیدلو احتمال هم ختم شو.

وَمَحْمَلُ الْحَدِيثِ اجْتِمَاعُ الصَّفْقَتَيْنِ عَلَى اود حدیث محمل د دوې (دوه) صفقتونو جمع کیدل دی مَا نُبَيِّنُ فِي بَابِ السَّلَمِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى چې موږ به ان شاءالله په ،،باب السلم،، کې ذکرکړو.



تشریح:- او باتې شو د حدیث مصداق نودا هغه وخت دی.چه کله دوي (دوه) عقدونه جمع شی.لکه څنګه چې په باب السلم کي بیان شوی دی.چه یوسړي یو کُر غنم واخستل.او رب المال ته ئې د قبضه کاوه حکم اوکړلو.نودا قبضه به معتبر نه وی.اوکه دا حکم ئې اوکړلو.چه اول ئې زما لپاره قبضه کړه.بیا ئې خپل ځان لپاره قبضه کړه.نو رب المال یوځل د مسلم الیه لپاره کیل اوکړلو.او په دوهم ځلی ئې ځان لپاره کیل اوکړلو.نودا به جائز وی.ځکه چې په دې صورت کي دوې (دوه) عقدونه د کیل په شرط جمع شوی دی.په دې وجه دوې (دوه) ځل کیل کول ضروری دی.

وَلَوِ اشْتَرَى الْمَعْدُودَ عَدًّا اوکه عددی شئ ئې په شمار واخستلو فَهُوَ كَالْمَذْرُوعِ فِيمَا يُرْوَى عَنْهُمَا نودا د صاحبینو رحمهما الله په نیز د مذروع پشان دې.

حل اللغة: ① المعدود-کوم شئ چې شمارلې شی-② المذروع-کوم شئ چې په ګز کولې شی-③ الربا-زیاتیدونکې

تشریح:- اوکه داسې شئ ئې واخستلو.کوم چې په شمار باندې خرخولې شی.مثلاً غوزان،هګۍ.مثلاً داسې ئې اوونیل چه زه دا زر غوزان د سل روپو په عوض خرخوم.نود صاحبینو رحمهما الله د روایت مطابق دا شئ د مذروع پشان شو.یعنی که دا کس دا غوزان د شمارلو په شرط باندې خرخ کړی.نود مشتری ثاني لپاره به په دوهم ځلی شمارل ضروری نه دی.بلکه مشتری ثاني د شمارلو نه بغیر په دې کي تصرف کولې شی.

لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالِ الرِّبَا ځکه چې دا مال رباء نه دې.

تشریح:- دلیل دادې.چه د مذروعات پشان داهم د اموال ربوا ځنې نه دی.ځکه یو غز د دوې (دوه) غوزانو په عوض خرخول جائز دی.

وَكَالْمَوْزُونِ فِيمَا يُرْوَى عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اود ابوحنیفه رحمه الله د روایت مطابق د موزون پشان دې. لِأَنَّهُ لَا تَحِلُّ لَهُ الزِّيَادَةُ عَلَى الْمَشْرُوطِ ځکه چې مشتری لپاره په مشروط مقدار باندې زیاتوالې حلال نه دې.

تشریح:- اود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د موزون پشان دې. ځکه چې څنګه موزوني شئ د مشروط مقدار نه زیاتی د مشتری لپاره حلال نه دې.دغه ډول معدودی( شماریدونکې) شئ هم د مشروط مقدار نه زیاتی حلال نه دې.نوکه یوکس د سل روپو په عوض زر غوزان واخستل.بیا دا د زرغوزانو نه زیات اوختل.نو بائع به زیاتی مقدار مشتری ته نه ورکوی.او که ددې مقدار نه کم اوختل.نو مشتری به د نقصان برخه د بائع نه واپس اخلی.یعنی ددې په اندازه به د بائع نه ثمن واپس اخلی.ځکه په معدودی شئ کي د تصرف کاوه نه وړاندې دا شمارل ضروری دی.د شمارلو نه وړاندې په دې کي تصرف کول جائز نه دې.لکه څنګه چې په موزوني شئ کي د وزن کاوه نه وړاندې په دې کي تصرف کول جائز نه دی.

## په ثمن کښې قبل القبض تصرف کول

قَالَ وَالتَّصَرُّفُ فِي الثَّمَنِ قَبْلَ الْقَبْضِ جَائِزٌ فرمائی.اود قبضه نه وړاندې په ثمن کي تصرف کول جائز دی لِقِيَامِ الْمُطْلَقِ وَهُوَ الْمِلْكُ ځکه چې د تصرف اجازت ورکونکې شئ یعنی ملك قائم دې.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه د عقدبیع نه روسته په ثمن باندې د قبضه کاوه نه وړاندې د بائع لپاره په ثمن کي د تصرف کاوه اجازت دې.ثمن که د ،،مالا يتعين،، د قبیلې ځنې وی.لکه نقود شو.اوکه د ،، ماتعين،، قبیلې ځنې وی.لکه مکیلی یاموزوني شیان شو.مثلاً که یوکس یو اوښ د سل روپو په عوض،یا ئې د یو کُرغنمو په عوض خرخ کړلو.نود بائع لپاره دراهم اوغنمو په بدله کي بل څه شئ اخستل جائز دی.

دادلیل دادې.چه په ثمن کي تصرف جائز کونکې شئ ملك دې.یعنی مالك ته پخپل مملوك شئ کي د تصرف اجازت وی.اود عقدبیع نه روسته بائع دثمن مالك کیږی.که په دې ئې قبضه کړې وی.اوکه نه وی کړې.

وَلَيْسَ فِيهِ غَرَرُ الِانْفِسَاخِ بِالْهَلَاكِ او په دې کي د ثمن هلاکیدلو په وجه د بیع فسخ کیدلو دهوکه نشته. لِعَدَمِ تَعَيُّنِهَا بِالتَّعْيِينِ ځکه چې ثمن متعین کاوه سره نه متعین کیږی بِخِلَافِ الْمَبِيعِ په خلاف د بیع.

حل اللغة: ① الغرر-دهوکه-② الانفساخ-فسخ کیدل-③ عدم -عدم وجود-④ التعیین-معین کول

تشریح:- اود تصرف نه مانع د عقدبیع فسخ کیدلو دهوکه وه.خو دلته کي د ثمن هلاکیدلو په وجه د عقدبیع فسخ کیدلو دهوکه هم موجود نه ده.ځکه چي ثمن په متعین کاوه سره نه متعین کیږي.په خلاف د مبیع،چه دا په متعین کاوه سره متعین کیږي.نوکه ثمن هلاك شو.نو مشتري ددې په ځائي نور ثمن ادا کولې شي.اوهرکله چي نور ثمن اداکړې شو.نود بیع فسخ کاوه امکان پاته نشو.حاصل داچه هرکله د تصرف جائز کونکې شئ یعني ملك موجود دې.او مانع د تصرف ختم شوې دې.نو په ثمن کي د تصرف په جائز کیدلو کي څه شبه نه ده.

**په ثمن یا مبیع کښي د کمي زیاتي حکم**

قَالَ وَيَجُوزُ لِلْمُشْتَرِي فرماني.اود مشتري لپاره جائز دی أَنْ يَزِيدَ لِلْبَائِعِ فِي الثَّمَنِ چي د بائع لپاره په ثمن کي اضافه اوکړي وَيَجُوزُ لِلْبَائِعِ أَنْ يَزِيدَ لِلْمُشْتَرِي فِي الْمَبِيعِ اود بائع لپاره جائز دی.چه مشتري لپاره په مبیع کي اضافه اوکړي وَيَجُوزُ أَنْ يَحُطَّ مِنَ الثَّمَنِ اودا هم جائز دی.چه د ثمن نه کم کړي.

حل اللغة: ① الزیادة-زیاتیدل-② الحط-کمیدل-③ الاستحقاق-مستحق کیدل-④ الالتحاق-ملحق کیدل

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که مشتري د بائع لپاره په ثمن کي څه اضافه ( زیادت) اوکړي.نو جائز ده.مثلاً یو غلام ئې په سل روپۍ واخستلو.بیا مشتري د لسو روپو اضافه اوکړله.نودا اضافه کول جائز دی.دغه ډول که بائع په مبیع کي اضافه اوکړي.یا په ثمن کي څه کم کړي.نو بیاهم جائز دی.مثلاً یوسړي د سلو روپو په عوض یو من غنم خرڅ کړل.بیا ئې په دې کي د لس ګلو غنمو اضافه اوکړله.یا ئې سل روپۍ په ثمن کي کمې کړې.نوجائز دی.

وَيَتَعَلَّقُ الِاسْتِحْقَاقُ بِجَمِيعِ ذَلِكَ ددې ټولو سره به استحقاق متعلق وی فَالزِّيَادَةُ وَالْحَطُّ يَلْتَحِقَانِ بِأَصْلِ الْعَقْدِ عِنْدَنَا [1] نو اضافه کول او کمول، زموږ په نیز اصل عقد سره لاحق کیږي.

تشریح:- او استحقاق به په اصل او زیات شوی دواړوسره متعلق وی.نو په ثمن کي د اضافه کاوه په صورت کي به بائع ته د مبیع منع کاوه حق هغه وخته پورې حاصل وی.چه تر کومه پورې دې اصل ثمن او زیات کړی شوې ثمن وصول نکړي.او دغه ډول به مشتري ته د مبیع غوښتلو اختیار هغه وخته پورې نه وی.چه تر کومه پورې دې مزید او مزیدعلیه یعني اصل ثمن او اضافه شوې بائع ته ورنکړي.اود ثمن کمولو په صورت کي مشتري د مابقي ثمن سپارلو نه روسته د پوره مبیع غوښتلوحقدار دې. او که مبیع مستحق شو.یعني چا د استحقاق دعوه اوکړله.او مبیع ئې د مشتري نه واخستلو.نو په ثمن کي د اضافه کاوه په صورت کي به مشتري د بائع نه اصل ثمن او اضافه شوې ثمن دواړه واپس اخلی.اود ثمن کمولو په صورت کي به مابقي ثمن واپس اخلی. حاصل داچه زموږ په نیز په ثمن کي زیاتې کول،او یا کمې کول، اصل عقد سره ملاویږي. ګویا اصل عقد هم په دې زیاتوالی یا کموالی باندې واقع شوې وو.

وَعِنْدَ زُفَرَ وَالشَّافِعِي رَحِمَهُمَا اللَّهُ لَا يَصِحَّانِ عَلَى اعْتِبَارِ الِالْتِحَاقِ،اود امام شافعي او امام زفر رحمهما الله په نیز د لاحق کاوه په اعتبار سره صحیح نه دی بَلْ عَلَى اعْتِبَارِ ابْتِدَاءِ الصِّلَةِ بلکه د صلې د ابتداء په اعتبارسره صحیح دی.

تشریح:- اود امام زفر او امام شافعي رحمهما الله په نیز د زیاتوالی اوکموالي اصل عقدسره ملاوولو اعتبارکول صحیح نه دی.بلکه په ثمن کي زیاتوالي کول به د مشتري د اړخه ابتداء احسان کول او هبه کول وی.یعني د عقدبیع نه روسته ګویا د پیل نه احسان شوې دې.اود مشتري د اړخه بائع لپاره هبه شوې دې.اود هبة د صحت لپاره چونکه قبضه شرط ده.په دې وجه زیاتي مقدار باندې چي کله د بائع قبضه اوشي.نو هله به دا هبه صحیح وی.او که په مبیع کي څه زیاتي کړې شو.نودا به د بائع د اړخه ابتداءً هبه وی.اوکه بائع په ثمن کي څه کمې اوکړلو.نودا به د

[1]) القول الراجح هو هذا قول الجمهور رحمهم الله كذا في الدرالمختار(١٨٦\٤) والبحر(١٢١\٦) نقلاً عن القول الراجح (٥٧\٢)-



بائع د اړخه مشتري د ثمن یوې برخې (حصې) نه بری کول وی.ځکه که مشتري دا ردکړي.نودا رد کیږي.یعني که مشتري د ثمن کمول قبول نکړي.بلکه دا واپس کړي.نود بائع په کمولو سره به نه کمیږي.بهرحال ددې دواړو حضراتو په نیز زیاتوالې اوکموالې اصل عقدسره نه یوځائي کیږي.بلکه زیاتوالې دسره ( ځانله) یو احسان او هبه ده.او کمول د ثمن د یومقدار نه بری کول دی.

لَهُمَا امام شافعي او امام زفر رحمهما الله دلیل دادې أَنَّهُ لَا يُمْكِنُ تَصْحِيحُ الزِّيَادَةِ ثَمَنًا،چي زیاتوالې ثمن ګرځول، او صحیح ونیل ممکن نه دی لِأَنَّهُ يَصِيرُ مِلْكُهُ عِوَضَ مِلْكِهِ ځکه چي د مشتري ملك به د مشتري په عوض کي شی فَلَا يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ په دې وجه به اصل عقد سره نه لاحق کیږي.

تشریح:- د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله دلیل دادې.چه زیاتي مقدار ثمن ګرځولو ته صحیح ونیل ممکن نه دی.ځکه چي کله یوسړي یو غلام د سل روپو په عوض واخستلو.نودا غلام د سلو روپو په عوض د مشتري په ملك کي داخل شو.یعني په سل روپۍ باندې دا مشتري ددې غلام مالك شو.نواوس که مشتري په ثمن کي زیاتوالې اوکړلو.مثلاً د لس روپو زیاتوالې ئې اوکړلو.اودا زیاتوالې ئې اصل عقدسره یوځائي کړلو.نو ګویا د مشتري ملك یعني زیاتي شوې ثمن پخپله د مشتري د ملك یعني د مبیع عوض شو.حالانکه دیو سړي ملك پخپله دده د ملك عوض کیدل ناجائز دی.په دې وجه زیات شوې رقم به اصل عقدسره نشي لاحق کولې.دغه ډول ثمن د عقدبیع نه روسته د بائع په ملك کي داخل شو.اوس که بائع په مبیع کي زیاتوالې اوکړي.نود بائع ملك یعني زیاتي مقدار به پخپله د بائع د ملك یعني د ثمن عوض شي.حالانکه دا ناجائز دی.په دې وجه د مبیع زیاتي مقدار اصل عقدسره نه یوځائي کیږي.

وَكَذَا الْحَطُّ،اوهم دغه ډول کمول لِأَنَّ كُلَّ الثَّمَنِ صَارَ مُقَابَلًا بِكُلِّ الْمَبِيعِ ځکه چي پوره ثمن د پوره مبیع په مقابله کښې شوې دې فَلَا يُمْكِنُ إِخْرَاجُهُ په دې وجه ددې نه اوبشکل ممکن نه دی فَصَارَ بِرًّا مُبْتَدَأً نودا ابتداء احسان شو.

تشریح:- دغه ډول په ثمن کي څه کمول به اصل عقد سره نشی یوځائي کولې.ځکه چي پوره ثمن د پوره مبیع په مقابله کي دې.یعني سل روپۍ د یو غلام په مقابله کي دی.نو اوس که مثلاً لس روپۍ کمې کړې شی.اودا اصل عقد سره یوځائي کړې شی.نود مبیع یعني د غلام یوه برخه به د عوض نه بغیر پاتې شی.حالانکه دا ناجائز دی.ځکه چي د مبیع هیڅ برخه د عوض نه بغیر نه وی.په دې وجه په ثمن کي څه کمول ممکن نه دی.اود کمولو نه روسته پاته ثمن یعني لس کم سل روپۍ د پوره مبیع مقابل ګرځول هم ممکن نه دی.ځکه چي داسې څه عقدجدید اونه مونډې شو.چه په هغې کي لس کم سل روپۍ ثمن مقرر کړې شوې وی.نو هرکله چي زیاتولې اوکموالي اصل عقد سره یوځائي کول ممکن نه دی.نود زیاتوالی په صورت کي به زیاتي مقدار دسره هبه او احسان ګنړلې شی.اود کموالی په صورت کي به کم کړې شوې مقدار ابراء یعني بری کول شمارلې شی.

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې أَنَّهُمَا بِالْحَطِّ وَالزِّيَادَةِ يُغَيِّرَانِ الْعَقْدَ مِنْ وَصْفٍ مَشْرُوعٍ إِلَى وَصْفٍ مَشْرُوعٍ چي بائع او مشتري په کمولو او زیاتولو سره عقد یو مشروع وصف نه دوهم مشروع وصف اړخ ته بدلوی وَهُوَ كَوْنُهُ رَابِحًا أَوْ خَاسِرًا أَوْ عَدْلًا اودا د بیع نفع مند، یا نقصان ده یا برابر کیدل دی.

حل اللغة: ① رابح-ګټه کونکې-② خاسر-تاوان کونکې-③ عدل-برابری کونکې-④ مشروع-جائز

تشریح:- زموږ دلیل دادې.چه بیع په دریو طریقو مشروع شوې ده.① بیع خاسر په دې کي تاوان وی. نوکه په ثمن کي زیاتوالې اوکړې شو.نودا زیاتوالې بیع خاسرلره بیع عادل،او بیع عادل لره رابح ګرځوی.② او په بیع رابح کي نفع وی. اوکه د ثمن نه څه کموالې اوکړې شی نودا بیع رابح لره عادل،او بیع عادل لره خاسر ګرځوی.③ او په بیع عادل کي نه تاوان وی او نه نفع وی. اوکه په مبیع کي زیاتوالې اوکړې شو.نودا زیاتوالی د مشتري په حق کي بیع خاسرلره عادل،او بیع عادل لره رابح ګرځوی.اود بائع په حق کي رابح لره عادل،او عادل لره خاسر ګرځوی.

نو بائع اومشتري چې کله د عقدبیع نه روسته خپل مینځ کښې په رضامندئ سره په ثمن یامبیع کښې څه اضافه اوکړله.یا ئې کمې اوکړلو.نو ګویا دوی خپل عقدبیع یو وصف مشروع نه بل وصف مشروع اړخ ته بدل کړلو.یعنی خاسر ئې عادل،او عادل ئې رابح کړلو.یا یې رابح عادل کړلو.یا عادل ئې خاسر کړلو.

**وَلَهُمَا وِلَايَةُ الرَّفْعِ** او بائع او مشتري ته د عقدبیع فسخ کاوه اختیار دې **فَأَوْلَى أَنْ يَكُونَ لَهُمَا وِلَايَةُ التَّغْيِيرِ** نو دې دواړو ته به د متغیر کاوه اختیار په درجه اولی وی.

حل اللغة: ① **الولایة**-اختیار-② **الرفع**-ختمیدل-③ **التغییر**-بدلول-⑤ **اسقط**-ساقط کړو

تشریح:- او بائع او مشتري ته د اصل عقد فسخ کاوه اختیار دې.نود عقدبیع یو وصف نه بل وصف اړخ ته د متغیر کاوه اختیار به په درجه اولی وی.ځکه چې په وصف کښې تصرف کول، په اصل شی کښې د تصرف کاوه نه اهون او آسان دی.

**وَصَارَ كَمَا إِذَا أَسْقَطَا الْخِيَارَ** اودا داسې شوه.لکه چې دواړو خیارساقط کړو **أَوْشَرَطَاهُ بَعْدَ الْعَقْدِ** یا د عقد نه روسته دواړو خیار شرط کړو

تشریح:- اودا داسې شوه.لکه څنګه چې د احدالعاقدین یا عاقدینو لپاره چې خیارشرط وو بیا دواړو دا ساقط کړله.یا دواړو د عقدنه روسته خیارشرط کړلو.یعنی په اصل عقدکښې د هیڅ چا لپاره خیار نه وو.بیا د عقدنه روسته دواړو شرط کړلو.نو په ړومبی صورت کښې عقد،صفت غیرلازم اړخ ته او په دوهم صورت کښې د لزوم نه غیرلزوم اړخ ته متغیر کیږی.اودا بالاتفاق جائز دی.نو لکه څنګه چې دا تغیر جائز دې.دغه ډول د کموالې زیاتوالې تغیر هم جائز دې.

**ثُمَّ إِذَا صَحَّ** بیا چې کله دا تغیرصحیح شو **لَتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ** نو اصل عقد سره به لاحق کیږی **لِأَنَّ وَصْفَ الشَّيْءِ يَقُومُ بِهِ** ځکه چې وصف د شئ په هغه شئ پورې قائم وی **لَا بِنَفْسِهِ** پخپل ذات پورې قائم نه وی

تشریح:- بهرحال کله چې د عقدبیع نه روسته په ثمن کښې زیاتوالې کموالې صحیح دې نودا به اصل عقدسره یوځائې کولې شی.ځکه چې په ثمن کښې زیاتوالې کموالې د ثمن وصف دې.اود شئ وصف هم د هغه شی سره قائم وی.پخپله جلا قائم نه وی.په دې وجه په ثمن کښې کمې زیاتې به د ثمن سره قائم وی.پخپله به جلا قائم نه وی.

**بِخِلَافِ حَطِّ الْكُلِّ** او په خلاف دهغه صورت چې واړه ثمن ختم کړی **لِأَنَّهُ تَبْدِيلٌ لِأَصْلِهِ لَا تَغْيِيرٌ لِوَصْفِهِ** ځکه چې دا د عقد په اصل کښې توپیر ده د هغې په وصف کښې توپیر نه ده **فَلَا يَلْتَحِقُ بِهِ** نودا (د کل ثمن ختمول) به په اصل عقد پورې نښی ملحق کولې

حل اللغة: ① **الحط**-کمیدل-② **تبدیل**-بدلول-③ **التغییر**-مغیر کول-④ **الالتحاق**-یوځائې کیدل

تشریح:- څوک که څوك سوال اوکړی.چه کله بعض ثمن کمول صحیح دی.نوګل په بعض باندې قیاس کاوه سره پوره ثمن کمول هم صحیح کیدل پکار وو.حالانکه پوره ثمن کمول صحیح نه دی؟

ځواب*ددې ځواب دادې.چه کله بائع پوره ثمن کم کړلو.نو د سره اصل عقد بدل شو.ځکه چې کله پوره ثمن کم کړې شو.نود ثمن نه کیدلو په وجه به یا خو بیع باطل وی.حالانکه دوی د بیع باطلولو اراده نه ده کړې.او یابه د بائع د اړخه مشتري لپاره هدیه شی.حالانکه ددې دواړو مقصد په مبیع کښې تجارت کول وو.هدیه کول نه وو.حاصل داچه په پوره ثمن کمولو کښې د اصل عقد توپیر ده.د وصف تغیر کول نه دی.اوچونکه د اصل عقد بدلیدلو په صورت کښې هیڅ شی پاتې نه پاتې کیږی.چه هغې سره الحاق (مولښتی) اوکړې شی.په دې وجه پوره ثمن کمول،اصل عقد سره نښی یوځائې کولې.اود څه ثمن کمولو په صورت کښې چونکه اصل عقد پاتې کیږی.صرف ددې وصف بدلیږی.په دې وجه په دې صورت کښې ثمن کمول به اصل عقد سره یوځائې کولې شی.



**وَعَلَى اعْتِبَارِ الِالْتِحَاقِ** اوکله چې د اصل عقد سره ملحق کول معتبرشو **لَا تَكُونُ الزِّيَادَةُ عِوَضًا عَنْ مِلْكِهِ** نوزیاتوالې به د خپل ملك عوض نه وی.

تشریح:- دا عبارت د امام زفر او امام شافعی رحمه الله د دلیل ځواب دې.حاصل د ځواب دادې.چه کله زیاتوالې اصل عقد سره لاحق کړې شو.نود مشتري ملك،د مشتري د ملك عوض کیدل نه لازمیږی.ځکه چې کله په ثمن کښې زیاتوالې اصل عقد سره یوځائې کړې شو.نودا داسې شوه.ګویا دا د عقد په وخت موجود وو.مثلاً ثمن سل روپۍ دی.او مشتري لس روپۍ زیاتې کړلې.نودا لس روپۍ چې کله اصل عقد سره ملاؤ شوې.نو داسې شوه.ګویا مشتري په ابتداء کښې مبیع په لس دپاځه سل باندې اخستې دې.او هرکله چې مشتري په ابتداء کښې مبیع د لس دپاځه سل روپو په عوض واخستلو.نود مشتري ملك،د مشتري دملك عوض کیدل نه لازمیږی.بلکه د بائع ملك یعنی مبیع دمشتري ملك یعنی لس دپاځه سل روپو په عوض شوې.او په دې کښې څه قباحت نشته.

**وَيَظْهَرُ حُكْمُ الِالْتِحَاقِ فِي التَّوْلِيَةِ وَالْمُرَابَحَةِ** او اصل عقد سره د ملاویدلو حکم په بیع تولیه او بیع مرابحه کښې ښکاره کیږی **حَتَّى يَجُوزَ عَلَى الْكُلِّ فِي الزِّيَادَةِ** تردې چې د زیاتولو په صورت کښې ګل باندې ( مرابحه او تولیه) جائز ده **وَيُبَاشِرَ عَلَى الْبَاقِي فِي الْحَطِّ** اود کمولو په صورت کښې پاتې باندې ( مرابحه او تولیه) جائز ده.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمانی.چه د کمی زیاتی اصل عقد سره یوځائې کولوحکم به په بیع مرابحه اوتولیه کښې ښکاره کیږی.چه په ثمن کښې د زیاتوالی په صورت کښې مرابحه اوتولیه په اصل ثمن او په زیاتوالی دواړو باندې واقع کیږی.مثلاً یوکس یو غلام په سل روپۍ باندې واخستلو.بیا مشتري د لسو روپو اضافه اوکړله.نو مشتري که دا غلام مرابحةً یا تولیةً خرڅول غواړی.نو دې به په لس دپاځه سل روپۍ باندې مرابحه اوتولیه کوی.اوکه بائع د سل روپو ثمن نه لس روپۍ کمې کړې.نو مشتري په لس کم سل روپۍ باندې مرابحه یا تولیه کولې شی.

**وَفِي الشُّفْعَةِ** اود شفع په صورت کښې هم ښکاره کیږی **حَتَّى يَأْخُذَ بِمَا بَقِيَ فِي الْحَطِّ** تردې چې د کمولو په صورت کښې به د مابقي عوض اخلی.

تشریح:- اود یوځائې کاوه حکم به د شفعه په صورت کښې هم ښکاره کیږی.که یوکس یوکور په زر روپۍ باندې واخستلو.بیا بائع سل روپۍ کمې کړلې.نو شفیع که داکور اخستل غواړی.نو په مابقي ثمن یعنی د نهه سوه روپو په عوض به ئې اخلی.

**وَإِنْ كَانَ لِلشَّفِيعِ** اود شفیع لپاره جائز دی **أَنْ يَأْخُذَ بِدُونِ الزِّيَادَةِ** چې د زیاتوالی نه بغیر واخلی **لِمَا فِي الزِّيَادَةِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّهِ الثَّابِتِ** ځکه چې د زیاتوالی په صورت کښې د شفیع هغه حق باطلول لازمیږی.کوم چې ثابت دې **فَلَا يَمْلِكَانِهِ** نو بائع او مشتري به ددې مالك نه وی.

تشریح:- داعبارت د یو سوال ځواب دې.سوال دادې.که زیاتوالې اصل عقد سره یوځائې کیدلې شی.نود زیاتوالی په صورت کښې شفیع له اصل ثمن او اضافی ثمن د دواړو په عوض اخستل پکار دی.مثلاً یوکور ئې د زر روپو په عوض واخستلو.بیا مشتري د سلو روپو اضافه اوکړله. نو اوس که شفیع دا کور د مشتري نه اخستل غواړی.نود یوولس سوه روپو په عوض به ئې اخلی. حالانکه داسې نه ده.بلکه حکم دادې.چه شفیع به دا کور د زر روپو په عوض اخلی.او زیاتوالې به په ده واجب نه وی.

ځواب*ددې ځواب دادې.چه د شفیع حق عقداول یعنی د زر روپو عوض سره متعلق شوې دې.او زیاتی مقدار یعنی سل روپۍ زیاتی په ده باندې واجبولوکښې دده ثابت شوې حق باطلول لازمیږی.په داسې حال کښې چې په دې کښې د شفیع نقصان هم دې.او بائع او مشتري ته د غیرحق باطلولو قطعاً اختیار نشته.په دې وجه د سل روپو زیاتی مقدار د بائع او مشتري په حق کښې به خو اصل عقد سره یوځائې کړې شی.خود شفیع حق سره به نښی یوځائې کولې.

ثُمَّ الزِّيَادَةُ لَا تَصِحُّ بَعْدَ هَلَاكِ الْمَبِيعِ عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بيا د مبيع هلاكيدلو نه روسته زياتول په ظاهر الرواية باندې صحيح نه دي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه دا واړه تفصيلونه هغه وخت دي. چه مبيع موجود وي. خو كه مبيع هلاك شو. نو د ظاهر الرواية د حكم مطابق په ثمن كې زياتې كول صحيح نه دي.

لِأَنَّ الْمَبِيعَ لَمْ يَبْقَ عَلَى حَالَةٍ څكه چې مبيع په داسې حالت باندې پاتې نه دې يَصِحُّ الِاعْتِيَاضُ عَنْهُ چې د دې عوض اخستل صحيح وي وَالشَّيْءُ يَثْبُتُ ثُمَّ يَسْتَنِدُ حالانكه شئ مخكې ثابتيږي. بيا منسوب كيږي.

حل اللغة: ① الاعتياض-عوض اخستل-② يثبت-ثابتيږي-③ يستند-منسوب كيږي-④ يصح-صحيح كيږي

تشريح:- دليل دا دې چې د هلاكيدلو نه روسته مبيع په داسې حالت باندې پاتې نشو. چه د هغې عوض اخستل صحيح وي. څكه چې عوض د موجود شئ وي. د معدوم (غيرموجود) شئ عوض نه وي. او قاعده ده. چه شئ مخكې پخپله ثابتيږي. بيا د بل اړخ ته منسوب كيږي. حالانكه دلته كې د مبيع نه موجود كيدلو په وجه د ثمن زياتوالې د سره ثابت نه دي. نو دا زياتوالي به اصل عقد اړخ ته نه منسوب كيږي. او دې سره به نه يوځائې كيږي.

بِخِلَافِ الْحَطِّ به خلاف د كمولو لِأَنَّهُ بِحَالٍ يُمْكِنُ إِخْرَاجُ الْبَدَلِ عَمَّا يُقَابِلُهُ څكه چې د كموالي حالت داسې دې چه د دې مقابل نه په بدل سره اوبشكل ممكن دی فَيَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ اسْتِنَادًا په دې وجه دا اصل عقد اړخ ته منسوب كيدو سره لاحق كيږي.

تشريح:- خو د مبيع هلاكيدلو نه روسته كه په ثمن كې كمې اوكړې شو. نو دا كمې به اصل عقد سره يوځائې كولې شي. څكه چې ثمن كمول، اسقاط (ساقطول) دی. او د ساقطولو لپاره ددې د مقابل موجود كيدل ضروري نه دي. په دې وجه كمول به في الحال ثابت شي. او اصل عقد سره به يوځائې كړې شي. د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن بن زياد رحمه الله په روايت كې دی. چه مبيع اگرچه په حقيقت كې هلاك شوې دې. خو دا به تقديراً موجود گڼرلې شي.

## په نغد ثمن سره خرڅولو نه روسته د پور په نيټه وركول

قَالَ وَمَنْ بَاعَ بِثَمَنٍ حَالٍ مصنف رحمه الله فرمائي. او كه يو كس څه شئ د نغد ثمن په عوض خرڅ كړو ثُمَّ أَجَّلَهُ أَجَلًا مَعْلُومًا بيا (د مشترى دپاره) ئې يو معلوم ميعاد مقرر كړو صَارَ مُؤَجَّلًا نو دا ثمن به پور شي.

حل اللغة: ① ثمن حال-نقدې پيسې-② الاجل-نيټه-③ التاخير-روستو كول-④ التيسير-آسانول

تشريح:- صورت د مسئلې دا دې. كه يو كس يو څيز د نغد ثمن په عوض خرڅ كړلو. بيا بائع د ثمن ادا كاوه لپاره يو ميعاد (نيټه) مقرر كړله. نو ددې دوې (دوه) صورتونه دي. ميعاد به معلوم وي. يا به مجهول وي. كه ميعاد معلوم دې. نو دا ميعاد مقررول جائز دي. او هم دا قول د امام مالك رحمه الله دې.

او امام شافعي او امام زفر رحمه الله فرمائي. چه په ميعاد مقررولو سره به ثمن پور نه وي. اگرچه ميعاد معلوم دې. د دې دواړو حضراتو په نيز د معلوم ميعاد مقررولو باوجود بائع في الحال د ثمن مطالبه كولې شي.

د امام زفر او امام شافعي رحمه الله دليل دا دې. چه ثمن د مشترى په ذمه دين وي. او دين په پور باندې قياس شوې دې. يعنې لكه څنگه چې پور د ميعاد مقررولو باوجود مؤجل نه وي. دغه ډول به دين هم مؤجل نه وي.

لِأَنَّ الثَّمَنَ حَقُّهُ څكه چې ثمن د بائع حق دې فَلَهُ أَنْ يُؤَخِّرَهُ تَيْسِيرًا عَلَى مَنْ عَلَيْهِ په دې وجه، ،من عليه الحق، ، (مشترى) د آسانولو ده ته اختيار دې. چه دې دا مؤخر كړي.

زموږ ① دليل دا دې. چه ثمن د بائع حق دې. او هر حق والا ته پخپل حق كې د تصرف كاوه اختيار وي. څكه به بائع ته دا اختيار حاصل وي. چه دې د مشترى په حق كې آسانتيا پيدا كاوه لپاره د خپل حق مطالبه د يو معلومې مودې پورې مؤخر كړي.





أَلَا تَرَى آيا نه گورې أَنَّهُ يَمْلِكُ إِبْرَاءَهُ مُطْلَقًا چې بائع، مشترى مطلقاً د برى كاوه اختيار لري فَكَذَا يُؤَقِّتُهُ دغه ډول د يو محدود وخت پورې مؤخر كاوه به هم مالك وي.

تشريح:- دوهم دليل دا دې. چه د بائع ثمن ادا كاوه لپاره ميعاد مقررول، مشترى د معلوم ميعاد راتگ و پورې د ثمن مطالبې نه برى كول دي. او بائع ته چونكه دا اختيار حاصل دې چه دې دسره د ثمن نه مشترى برى كړي. نو د يو محدود وخت پورې د مطالبې نه د برى كاوه اختيار به په درجه اولى حاصل وي.

وَلَوْ أَجَّلَهُ إِلَى أَجَلٍ مَجْهُولٍ او كه دده لپاره ئې څه مجهول ميعاد مقرر كړو إِنْ كَانَتِ الْجَهَالَةُ مُتَفَاحِشَةً كه جهالت فاحشه وي كَهُبُوبِ الرِّيحِ لكه هوا چليدل لَا يَجُوزُ نو جائز نه دي.

حل اللغة: ① التوجيل-نيټه وركول-② هبوب-الوتل ③ الريح-هوا\باد ④ المتفاحشة-زيات

تشريح:- او كه ميعاد مجهول وي. نو كه جهالت فاحشه وي. مثلاً د ثمن ادا كاوه لپاره ئې د هوا چليدلو، يا باران وريدلو پورې ميعاد مقرر كړلو. نو دا جائز نه دي. يعنې ددې ميعاد اعتبار به نه كيږي. بلكه بائع ته به هر وخت د مطالبه اختيار حاصل وي.

وَإِنْ كَانَتْ مُتَقَارِبَةً او كه جهالت قريب الفهم وي كَالْحَصَادِ لكه فصل پرې كول وَالدِّيَاسِ او غوبل كول يَجُوزُ نو جائز دي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْكَفَالَةِ څكه چې دا په منزله د كفالة ده وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ دا وړاندې ذكر كړې دي.

حل اللغة: ① المتقاربة-بل سره نږدې-② الحصاد-ريبل-③ الدياس-غوبل كول-④ منزلة-پشان

تشريح:- او كه جهالت يسيره وي. مثلاً د ثمن ادا كاوه لپاره ئې فصل كټ كيدلو، يا غوبل كاوه پورې ميعاد مقرر كړلو. نو دا جائز دې. يعنې ددې ميعاد پوره كيدلو نه وړاندې به بائع ته د مطالبه حق نه وي. دليل دا دې. چه د عقد بيع نه روسته ثمن مؤجل كول، د كفالة په مرتبه كې دی. او وړاندې تيرشوی دی چه كفالة د جهالت يسيره سره صحيح كيږي. خو د جهالت فاحشه سره نه صحيح كيږي. نو هم دغه ډول دين ثمن په جهالت يسيره سره مؤجل كول درست دی. خو جهالت فاحشه سره مؤجل كول ټيك نه دی. كه په عقد بيع كې اجل (نيټه) شرط اوگرځولې شو. نو عقد بيع جهالت فاحشه او جهالت يسيره دواړو سره فاسديږي. تفصيل وړاندې تيرشوې دې.

## مديون ته مهلت وركول

قَالَ وَكُلُّ دَيْنٍ حَالٍّ إِذَا أَجَّلَهُ فرمائي. او هر دين معجل كله چې صاحب دين د مديون لپاره څه ميعاد مقرر كړي صَاحِبُهُ صَارَ مُؤَجَّلًا نو هغه مؤجل كيږي لِمَا ذَكَرْنَا (إِلَّا الْ پور) فَإِنَّ تَأْجِيلَهُ لَا يَصِحُّ خو پور څكه چې د دې مؤجل كول صحيح نه دي.

تشريح:- د پور اخستونكي په ذمه چه څه واجب وي هغه دين دې او پور وركونې چې څه وركوي هغه پور دې مثلاً زيد عمرو ته زر روپۍ وركړې نو دا زر روپۍ د زيد په حق كې پور دې او د عمرو په حق كې دين دې د پور او دين په مينځ كې د توپير پيژندلو نه روسته د متن مسئلې ته راشه

هر هغه دين چې د هغې ادا كول في الحال په ذمه واجب وي. كه په دې كې صاحب دين د مديون لپاره څه معلوم ميعاد مقرر كړي. نو دا به دين مؤجل شي. دليل وړاندې تيرشوې دې. چه دين د صاحب دين حق دې. دې خپل حق بالكليه ساقطولې هم شي. او د مديون د سهولت په خاطر د دين مطالبه مؤخر كولې هم شي.

خو زموږ په نيز كه د پور ادا كاوه لپاره څه ميعاد مقرر كړې شو. نو دا ټيك نه دې. بلكه د ميعاد مقررولو نه روسته قرضخواه (پور غوښتونكې) د قرضدارى نه فوري مطالبه كولې شي. حاصل دا كه په پور كې څه ميعاد مقرر كړې شو. نو قرضه به ټيك وي. او ميعاد به باطل وي.

لِأَنَّهُ إِعَارَةٌ وَصِلَةٌ فِي الْإِبْتِدَاءِ ځكه چې دا په ابتداء كې اعاره او تبرع ده حَتَّى يَصِحَّ بِلَفْظَةِ الْإِعَارَةِ، تردې چې په لفظ د اعاره سره صحيح كيږي وَلَا يَمْلِكُهُ مَنْ لَا يَمْلِكُ التَّبَرُّعَ او كوم كس چې د تبرع مالك نه وي كَالْوَصِيِّ وَالصَّبِيِّ لكه وصی او صبی وَمُعَاوَضَةٌ فِي الْإِنْتِهَاءِ او په انتهاء كې معاوضه ده.

حل اللغة: ① صلة-احسان-② الابتداء-شروع-③ الصبى-ماشوم-④ الانتهاء-آخر

تشريح:- زموږ دليل دادې چه قرضه په ابتداء كې احسان او تبرع ده. كه قرضه وركونكی د «أقرضتك هذه الألف» ځانې «أعرتك هذه الألف» اوونيل. نو صحيح كيږي. او كوم كس چې د احساناتو او تبرعات اختيار نه لري. هغه ته د قرضه وركاوه اختيار هم نه وي. لكه نابالغه بچې، وصى، غلام، مكاتب. نو ثابته شوه. چه قرضه د تبرعاتو څخه ده. اود انتهاء په اعتبار سره قرضه معاوضه ده. ځكه چې سرې قرضه دې لپاره وركوي. چه ددې نه روسته ددې بدل واخلي. هم دا وجه ده. چه په قرضه اخستونكی باندې بعينه هم د هغه شئ واپس كول واجب نه وي. كوم چې دده د قرضخواه نه اخستې دي. بلكه ددې مثل واپس كول واجيبږي. ددې نه معلومه شوه. چه قرضه د انتهاء په اعتبار سره معاوضه ده.

فَعَلَى اعْتِبَارِ الْإِبْتِدَاءِ لَا يَلْزَمُ التَّأْجِيلُ فِيهِ نود ابتداء اعتبار كاوه سره په دې كې ميعاد نه لازميږي كَمَا فِي الْإِعَارَةِ، إِذْ لَا جَبْرَ فِي التَّبَرُّعِ لكه په اعاره كې. ځكه چې په تبرع كې زبردستی نه كيږي.

حل اللغة: ① يلزم-لازميږي-② التاجيل-نيټه وركول-③ الجبر-زبردستی-④ التبرع-احسان

تشريح:- نود پور ابتدائی حالت په اعتبار كولو سره خو په پور كې ميعاد نه لازميږي. لكه څنګه چې په اعاره (قرض) كې ميعاد نه لازميږي. كه يو كس خپل څه سامان يو مياشت پورې چاله په عاريت (قرض) باندې وركړلو. نو په عاريت (قرض) باندې وركونكې كه اوغواړي. نو خپل سامان فوري طور باندې واپس اخستلې شي. ځكه چې په عاريت (قرض) باندې وركول تبرع (احسان) ده. او په تبرعاتو كې جبر (زور) نه كيږي. او كه ميعاد لازم كړې شو. نودا به په معير (په پور وركونكی) باندې جبر وي. ځكه چې د ميعاد لازمولو په صورت كې عاريت باندې وركونكی ته د ميعاد تيريدلو نه وړاندې د مطالبه اجازت نه وي. نو لكه څنګه چې په اعاره كې ميعاد لازم نه وي. دغه ډول قرضه هم چونكه تبرع ده. (احسان دې) په دې وجه به په قرضه كې هم ميعاد لازم نه وي.

وَعَلَى اعْتِبَارِ الْإِنْتِهَاءِ لَا يَصِحُّ؛ اود انتهاء اعتبار كاوه سره ميعاد صحيح نه دې لِأَنَّهُ يَصِيرُ بَيْعَ الدَّرَاهِمِ بِالدَّرَاهِمِ نَسِيئَةً ځكه چې دا به د دراهمو بيع د دراهمو په عوض پور شي وَهُوَ رِبًا حالانكه دا رباء ده.

حل اللغة: ① يصح-صحيح كيږي-② نسيئة-قرض-③ ربا-سود-④ يقرض- پور وركوي

تشريح:- اود انتهاء په اعتبار كاوه سره ميعاد مقررول صحيح نه دی. ځكه چې قرضه د انتهاء په اعتبار سره د ميعاد مقررولو په صورت كې به،، بيع الدراهم بالدراهم نسيئةً،، شي. اود دراهمو په عوض پور خرڅول ربوا ده. اګرچه په دراهمو كې كمې زياتې نه وي. اود ربوا لازميدل د پور د فساد تقاضا كوي. حالانكه په شريعت د اسلام كې قرضه وركول مندوب او مستحب دی. اود قرضه په جواز باندې د امت مسلمه اجماع ده. نو موږ د قرضه ابتدائی حالت اعتبار اوكړلو. اود ميعاد لازمولو نه بغير ددې د جواز قائل شو.

وَهَذَا بِخِلَافِ اودا د هغه صورت په خلاف دې مَا إِذَا أَوْصَى أَنْ يُّ پور مِنْ مَالِهِ أَلْفَ دِرْهَمٍ فُلَانًا إِلَى سَنَةٍ چې كله يو سړی وصيت اوكړو چه دده په مال كې زر درهم فلانی ته د يو كال په پور وركړه حَيْثُ يَلْزَمُ الْوَرَثَةَ مِنْ ثُلُثِهِ أَنْ يُقْرِضُوهُ نو په وراثانو به لازم وي. چه دده د دريمې برخې (حصې) مال نه هغه ته پور وركړي وَلَا يُطَالِبُوهُ قَبْلَ الْمُدَّةِ اود مودې نه وړاندې د هغه نه مطالبه اونكړي.

تشريح:- په دې عبارت سره يو اشكال بيانوی هغه دا كه يو كس په مرض د وفات كې وصيت اوكړلو چه زما په مال كې زر درهمه خالد ته د يو كال په وعده پور وركړه. نودا پور مؤجل كيږي. او ددې ميعاد لازم دې. نود مړكيدونكی



به د مړكيدونكی په دريمه برخه مال كې خالد ته قرضه وركوي. اود يو كاله پورې به د واپسۍ مطالبه نه وارثان به د مړكيدونكی په دريمه برخه مال كې خالد ته قرضه وركوي... ددې نه معلوميږي. چه په پور كې ميعاد مقررولو سره ميعاد لازميږي. حالانكه تاسو اوفرمائيل چه ميعاد نه كوي. ددې نه معلوميږي. چه په پور كې ميعاد مقررولو سره ميعاد لازميږي.

لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِالتَّبَرُّعِ ځكه چې دا د تبرع كاوه وصيت دې بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ بِالْخِدْمَةِ وَالسُّكْنَى لكه د غلام خدمت، او په كور كې د اوسيدلو وصيت نې كړې وي فَيَلْزَمُ حَقًّا لِلْمُوصِي، وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ نودا به د موصی دحق په وجه واجب وي.

تشريح:- په دې عبارت سره د دغه اشكال ځواب وركوي فرمايي چې مړكيدونكی د يو احسان او تبرع وصيت كړې دې. او په وصيت كې هغه شئ لازميږي. كوم چې په غيروصيت كې نه لازميږي. نود قرضه وركونكی په وصيت كې به ميعاد مقررولو سره ميعاد لازميږي. اګرچه په غيروصيت كې ميعاد نه لازميږي. لكه مثلاً يو كس دا وصيت اوكړلو چه زما غلام به د فلانی خدمت كوي. يا فلانې سړې به زما د مرګ نه روسته زما په كور كې اوسيږي. نودا به د وصيت كونكی په حق كې لازم وي. او لكه مثلاً يو كس د څلور لپاره د خپل باغ د ميوو وصيت اوكړلو نودا وصيت به صحيح او لازم وي. اګرچه د وصيت په وخت ميوې معدوم (غيرموجود) وي. دغه ډول د قرضه وركونكی په وصيت كې ميعاد لازميږي. اود مړی وارثانو ته به د مقرر ميعاد، يعنې د يو كال نه وړاندې د موصی له نه د قرضه واپس اخستلو حق نه وي.

## باب الربوا

ژباړه (دا) باب د ربوا (په بيان كې) دې.

تشريح:- المناسبة بين المرابحة والربوا۞ او باب الربوا ته د باب مرابحه سره خاص طور باندې مناسبت حاصل دې چه په ربوا او مرابحه دواړوكې په هريوكې زياتوالې كيږي. البته د مرابحه زياتوالې حلال وي. اود ربا زياتوالې حرام وي. او چونكه په اشياؤ كې حلت اصل دې. په دې وجه د مرابحه احكام وړاندې اود ربوا احكام روسته بيان كړې شو.

معنى الربوا لغة ۞ ربوا، بكسر الراء په لغت كې د زياتوالی په معنى ده. لكه ونيلې شی: «هذا يربوا على هذا» دا ددې نه زيات دې.

الربوا في الشريعة ۞ دشريعت په اصطلاح كې ربوا،، معاوضة مال بمال،، كې د هغه مالی زياتوالی نوم دې چه د هغې په مقابله كې عوض نه وي.

ربوا بالاجماع حرام ده. او ددې حرمت منصوص دې. لكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا﴾

الزواجر لاكل الربوا۞ او الله تعالى د سود خوړونكی والا لپاره پنځه سزاګانې بيان كړې دی. ① تخبط: سود خور به د قيامت په ورځ د قبر نه داسې پاسی چې مخبوط الحواس به وي ② الله تعالى د سود مال ختموی ③ سود خپاره دې د الله جنګ ته ځان تيار كړی ④ سود حلال ګڼړل كفر دې ⑤ سود خور كه د خپل سود نه منع نه شو نو دوی جهنميان دی

تغليظ حرمة الربوا في الحديث۞ او رسول الله ﷺ په سود خوړونكو، ددې تحرير ليكونكو، او ددې په دواړو ګواهانو باندې لعنت فرمائيلې دې. لكه چې په ترمذی كې د ابن مسعود ﷺ حديث دې. «لعن رسول الله ﷺ آكل الربوا وموكله وشاهديه وكاتبه»

### مكيلي او موزوني څيز په كمي زياتي سره خرڅول اود ربوا علت

قَالَ الرِّبَا مُحَرَّمٌ امام قدروی ﷫ فرمائی. رباء په هر داسې شئ كې حرام شوې ده. فِي كُلِّ مَكِيلٍ أَوْ مَوْزُونٍ چې دا كيلی يا وزنی وي إِذَا بِيعَ بِجِنْسِهِ مُتَفَاضِلًا كله چې دا د خپل جنس په عوض زياتوالی سره خرڅ كړې شی.

**حل اللغة:** ① **متفاضل**-يودبل نه زيات- ② **مكيل**-هغه شئ چې په پيمانه سره ناپ كولې شي- ③ **موزون**-هغه څيزچه په تله باندې وزن كولې شي

**تشريح:**- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائى چه رباء په هرمكيلى او موزونى شئ كي حرام ده.په دې شرط چې ددې د جنس په عوض كمى زياتى سره خرڅ كړې شى.نو زموږ په نيز د رباء علت،،كيل مع الجنس،،يا،،وزن مع الجنس،، دې.يعنى په كومو دوې (دوه) څيزونوكي چې مبادله شوې ده.هغه دواړه مكيلى وى.يا موزونى وى.خو ددې دواړو جنس يووى.اوكه دواړه عوضونه موزونى وى.جنس يو نه وى.مثلاً سره زر او سپين زر.دواړه مكيلى وى.خوجنس يو نه وى.لكه غنم او اوربشې.نو ددې دواړو په مينځ كي ربوا او زياتوالي حرام نه دې.علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه لفظ د قدر چونكه كيل او وزن دواړو ته ګډ دې.په دې وجه دا هم ونيلې شى.چه علت د ربوا،،قدرمع الجنس،، دې.

**فَالْعِلَّةُ عِنْدَنَا الْكَيْلُ مَعَ الْجِنْسِ** نو علت زموږ په نيز كيل مع الجنس **وَالْوَزْنُ مَعَ الْجِنْسِ قَالَ رضي الله عنه: وَيُقَالُ الْقَدْرُ مَعَ الْجِنْسِ** چې قدرمع الجنس هم ونيلې شى **وَهُوَ أَشْمَلُ** او دا دواړو ته ګډ دې. **وَالْأَصْلُ فِيهِ الْحَدِيثُ الْمَشْهُورُ وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** اصل په دې باب كي حديث مشهوردې {**الْحِنْطَةُ بِالْحِنْطَةِ مِثْلًا بِمِثْلٍ يَدًا بِيَدٍ وَالْفَضْلُ رِبًا**} (١) **وَعَدَّ الْأَشْيَاءَ السِّتَّةَ:** او رسول الله صلى الله عليه وسلم هم په دې مثال باندې شپږ شيان شماركړى دى **الْحِنْطَةَ** غنم **وَالشَّعِيرَ** وربشې **وَالتَّمْرَ** چواره **وَالْمِلْحَ** مالګه **وَالذَّهَبَ** سره زر **وَالْفِضَّةَ** سپين زر **عَلَى هَذَا الْمِثَالِ** په دې مثل باندې

**حل اللغة:** ① **الحنطة**-غنم- ② **الشعير**-اوربشه- ③ **التمر**-قجوره- ④ **الملح**-مالګه ⑤ **الذهب**-سره زر ⑥ **الفضة**-سپين زر- ⑦ **القدر**-مقدار- ⑧ **اشمل**-زيات شامل

**تشريح:**- د،،قدر مع الجنس،،د ربوا په علت كيدلوكي اصل حديث مشهور دې.دا حديث شپاړس صحابه كرامو رضي الله عنهم روايت كړې دې.علامه مرغينانى رحمه الله د حضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه د حديث يوه ټكړه ذكر كړې ده.پوره حديث داسې دې. «عن ابيسعيد الخدرى رضي الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه قال الذهب بالذهب مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا ،والفضة بالفضة مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا ،والحنطة بالحنطة مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا ،والشعير بالشعير مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا ،والملح بالملح مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا ،والتمر بالتمر مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا»

**وَيُرْوَى بِرِوَايَتَيْنِ** اودا حديث په دوې (دوه) روايتونو سره نقل دې **بِالرَّفْعِ مِثْلٌ** په رفع سره مثل **وَبِالنَّصْبِ مِثْلًا** او په نصب سره مثلاً **وَمَعْنَى الْأَوَّلِ بَيْعُ التَّمْرِ** اود وړمبى معنى،، بيع التمر ،،ده **وَمَعْنَى الثَّانِي بِيعُوا التَّمْرَ** اود دوهم معنى،، بيعوا التمر،، ده.

**تشريح:**- دا حديث د اعراب په اعتبارسره په دوې (دوه) طريقو نقل دې.يوخو كلمات سته او لفظ مثل په رفع سره دى.په دې صورت كي به مضاف مقدر وى.تقدير عبارت به داسې وى. «بيع الحنطة بالحنطة مثل بمثل» بيع الحنطة به مبتدا وى.او مثل به ددې خبر وى.

په دوهم روايت كي داكلمات او لفظ د مثل منصوب دې.په دې صورت كي به فعل امر بيعوا مقدر وى.تقديرى عبارت به داسې وى. «بيعوا الحنطة بالحنطة ،الحديث» دا كلمات په د بيعوا مفعول كيدلو په وجه منصوب وى.او لفظ مثلاً به حال كيدلو په وجه منصوب وى.په حديث كي مثلاً بمثل نه مراد دادې.چه دواړه عوض كيل يا وزن كي برابر وى.اود يداً بيد نه مراد دادې.چه په دواړه عوضونوكښې په مجلس عقدكي قبضه اوشى.حاصل داچه

(١) من حديث عبادة بن صامت رضي الله عنه أخرجه مسلم فى المساقاة رقم ٨١ وأبوداود فى البيوع باب ١٢ رقم ٣٣٥٠ والترمذى فى البيوع باب ٢٣ رقم ١٢٤٠ وابن ماجه فى التجارات باب ٤٨ رقم ٢٢٥٤)_



اتحاد قدر اود اتحاد جنس په صورت كښې په عوضين كي د كيل يا وزن په اعتبارسره برابرى هم شرط ده.او په عوضينو باندې قبضه هم شرط دې.

## د احناف او شوافعو(رح) په نيز د ربوا علت

**وَالْحُكْمُ مَعْلُولٌ بِإِجْمَاعِ الْقَائِسِينَ** دا په اجماع د مجتهدينو معلول دې **لَكِنَّ الْعِلَّةَ عِنْدَنَا مَا ذَكَرْنَاهُ** او كوم حكم چې په حديث كي ذكر دې خو زموږ په نيز علت هغه دې.كوم چې موږ ذكركړو.

**تشريح:**- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د ټولو مجتهدينو په دې باندې اجماع ده.چه د فضل اوزياتوالى حرام كيدلوحكم معلول دې.يعنى په علت باندې مبنى دې.كه علت اوموندې شى.نو ربوا يعنى حرمت فضل به متحقق وى.ګنى ددې تحقق به نه كيږى.اګرچه اصحاب ظواهر د قياس اوعلت انكار كوى.او په حديث كي ذكرشوى شپږ څيزونو سره ربوا خاص كوى.خوچونكه د آئمه اربعه په نيزحكم د ربوا معلول دې.په دې وجه د ربوا د علت بيان ضرورى دې.نو اوګورئ چې زموږ په نيز د ربوا علت،،قدرمع الجنس،، دې.چه په حديث كي د ذكرشوى شپږ څيزونو نه علاوه كوم ځائې كي دا علت اوموندې شى.هلته به ربوا متحقق وى.مثلاً د چونې تبادله كه د چونې سره اوشى.نو په دې كي به فضل او زياتوالى ته ربوا وائى.ځكه چې دواړه عوض كيلى دى.اود دواړو جنس هم يو دې.اوهم دغه ډول كه د اوسپنې، پيتل،او قلعى( يو ډول دهات) ددې د هم جنس په عوض خرڅ كړې شى.نو يو اړخ ته فضل اوزياتوالي به رباء شمارلې شى.ځكه چې دواړه عوض وزنى كيدلو سره سره متحدالجنس هم دى.

**وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ: الطُّعْمُ فِي الْمَطْعُومَاتِ** اود امام شافعى رحمه الله په نيز په مطعوماتو كي طعم دې **وَالثَّمَنِيَّةُ فِي الْأَثْمَانِ** او په اثمان كي ثمن كيدل دى **وَالْجِنْسِيَّةُ شَرْطٌ**،او ددې شرط جنسيت دې **وَالْمُسَاوَاةُ مُخَلِّصٌ** او برابر كيدل ددې خلاصې دې.

**حل اللغة:** ① **الطعم**-خوراك- ② **الاثمان**-جمع د ثمن،هغه څيزچه د مبيعې په مقابله كي- ③ **المساواة**-برابرى- ④ **المخلص**-خلاصې

**تشريح:**- اود امام شافعى رحمه الله په نيز د ربوا علت په مطعوماتو كي طعم دې.او په اثمان كي ثمن دې.چه په هرهغه شئ كي به ربوا حرام وى.چه په هغې كي طعم كيدل يا ثمن كيدل اوموندې شى.د مطعوم نه مراد هرهغه شئ دې.كوم چې عام طورباندې خوړلې شى.كه روزى جوړه شى.يا سالن جوړشى. اوكه د تلذذ او تفكه (يعنى د خوند اومزې) په طور وى.ددې تعريف په بنا (بنياد) باندې مطعوماتو كي ميوې، غله،سبزيانې،او ټولې مصالحې داخليږى.اود علامه بدرالدين عينى رحمه الله د قول مطابق د ثمن نه مراد دادې.چه موږزاده (پيدائشى) طور باندې ثمن وى.لكه سره او سپين زر،يا چې ددې په ثمن كيدلو باندې خلګو اتفاق كړې وى.لكه مروجه سكه. بهرحال د امام شافعى رحمه الله په نيز د ربوا علت په مطعوماتو كي طعم دې.او په اثمان كي ثمن دې.او ددې شرط د جنس متحد كيدل دى.اود امام شافعى رحمه الله په نيزپه اموال ربواكي اصل حرمت دې.خود ربوا د حرمت نه د بچ كيدلو څيز،د دواړو عوضونو په مينځ كي مساوات او برابرى ده.يعنى كه د ربوا علت موجود كيدلو په صورت كي دواړه عوضونه برابر وى.نودا عقدبه حرام نه وى.بلكه مباح او جائز به وى.

**وَالْأَصْلُ هُوَ الْحُرْمَةُ عِنْدَهُ** اود امام شافعى رحمه الله په نيز حرمت اصل دې **لِأَنَّهُ نَصَّ عَلَى شَرْطَيْنِ** ځكه چې شارع عليه السلام د دوې (دوه) شرطونو صراحت فرمائيلې دې **التَّقَابُضِ** په مينځ كي قبضه كول، **وَالْمُمَاثَلَةِ** او برابرى كيدل **وَكُلُّ ذَلِكَ يُشْعِرُ بِالْعِزَّةِ وَالْخَطَرِ** او هريو شرط د عزت او حرمت خبر وركوى **كَاشْتِرَاطِ الشَّهَادَةِ فِي النِّكَاحِ** لكه څنګه چې په نكاح كي ګواهى شرط ده.

**حل اللغة:** ① **الحرمة**-حراموالې ② **التقابض**-د يوبل نه قبض كول- ③ **المماثلة**-يوشان والې- ④ **يشعر**-خبرورکوى ⑤ **العز**-عزت- ⑥ **الخطر**-حرمت- ⑦ **الاشتراط**-شرط لګول- ⑧ **نص**-صراحت كړې

**تشریح:-** د طعم اوثمنیت په علت ربواکیدلو باندې دحضرت امام شافعي رحمه الله دلیل دادې چه رسول الله ﷺ د اموال ربویه په اخستلو او خرڅولو کې د دوې (دوه) شرطونو تصریح کړې ده.یود عاقدینو په عوضینو باندې قبضه کول.لکه څنګه چې د ،،یداً بید،، لفظ نه معلومیږي. دوهم داچه د دواړو عوضونو مساوی اوبرابر کیدل.لکه څنګه چې د لفظ،، مثلا بمثل،، نه معلومیږي.ددې دواړو شرط کیدل په دې طریقه دی.چه د نصب په حالت کې دا دواړه لفظونه په ترکیب کې حال واقع شوی دی.او حال شرط وی.څکه به دا دواړه خبرې شرط وی.اود رفع روایت مطابق په دا ویلې شی.چه دا دواړه لفظونه یعنی،، یدا بید،،او،،مثلاً بمثل،،په لفظونوکې اګرچه مرفوع دی.خو معنی نصب معتبر دی.اود نصب نه رفع ارخ ته صرف په دې وجه عدول شوې دې.چه د جملهٔ اسمیه کیدلو په وجه په دوام اوثبوت باندې دلالت اوکړي.نوهرکله چې نصب معتبر دې.نودا دواړه خبرې یعنی تقابض اومماثلت به شرط وی.بهرحال په حدیث کې د تقابض اومماثلت شرط کیدل په صراحت سره وارد شوی دی.او په دې دواړو شرطونوکې هریو په دې خبره دلالت کوی.چه دکوم مال لپاره داشرطونه لګولی شوی دی.هغه مال د عزت اوحرمت قابل دې.لکه د عقد نکاح لپاره د شاهدین شرط کیدل (او په نورو معاملاتو کې د شاهدینو شرط نه کیدل) دملك بضع (محل وطی) د عزت اوحرمت قابل کیدلو باندې دلالت کوی.نود مال قابل عزت اومحترم کیدل ثابت شو.

| فَيُعَلَّلُ بِعِلَّةٍ نو په داسې علت سره به معلل کولای شی تُنَاسِبُ إِظْهَارَ الْخَطَرِ وَالْعِزَّةِ کوم چې د عزت او حرمت ښکاره کاوه لپاره مناسب وی وَهُوَ الطُّعْمُ او هغه طعم دې لِبَقَاءِ الْإِنْسَانِ بِهِ څکه چې په دې سره د انسان ژوند پاته کیږي وَالثَّمَنِيَّةُ لِبَقَاءِ الْأَمْوَالِ الَّتِي هِيَ مَنَاطُ الْمَصَالِحِ بِهَا اوثمن کیدل دی.څکه چې د مالونو بقاء کوم چې د مصلحتونو مدار دبهم ددې ثمن په وجه دې. |
|---|

**حل اللغة:** ① تناسب-مناسب وی-② الاظهار-ښکاره کول-③ البقاء-پاته کیدل-④ مناط-دارومدار

**تشریح:-** اوهر کله چې مال عزیز اومحترم دې.نود حرمت رباء علت داسې څیزګرځول مناسب دی.چه د مال عزت اوحرمت ښکاره کړي.او کله چې موږ په جور نظر اوکتل.نو طعم اوثمنیت دواړه شیان د مال عزت اوحرمت ښکاره کونکی په نظر راغلل.طعم څکه د مال عزت اوحرمت ښکاره کوی.چه په طعم سره د انسان ژوند پاته کیږي.څکه که انسان ته مطعومات ملاؤ نشی.نو انسان به د اولګې مړی شی.او انسانی نسل به تباه شی.او ثمنیت څکه د مال حرمت اوعزت ښکاره کوی.چه ثمن د انسان هغه مقصدونه اومصلحتونه پوره کاوه ذریعه جوړیږي.په کوم چې د انسان بقاء موقوف ده.نو هرکله چې طعم او ثمنیت دواړه د مال عزت اوحرمت ښکاره کوی.نوحضرت امام شافعي رحمه الله په مطعوماتو کې طعم او په اثمان کې ثمنیت د حرمت ربوا علت اوګرځولو.

| وَلَا أَثَرَ لِلْجِنْسِيَّةِ فِي ذَلِكَ او جنسیت ته په دې کې هیڅ دخل نشته فَجَعَلْنَاهُ شَرْطًا په دې وجه جنسیت موږ شرط اوګرځولو وَالْحُكْمُ قَدْ يَدُورُ مَعَ الشَّرْطِ اوحکم کله کله شرط سره دائر کیږي. |
|---|

**حل اللغة:** ① یدور-چکرلګوی-② سوق-بیان-③ ینبئ-خبرور کوی-④ التماثل-یوبل سره مشابهت

**تشریح:-** اوجنسیت او قدرته د مال عزت اوحرمت ښکاره کاوه کې هیڅ دخل نشته.په دې وجه دا علت ربوا او نه ګرځولی شو.البته جنسیت دحرمت ربوا شرط اوګرځولې شو.او حکم چونکه شرط سره وجوداً اوعدما دائر کیږي.په دې وجه علت سره که جنسیت هم اوموندې شی.نو ربوا به حرام وی.اوکه جنسیت اونه موندې شی.نو ربوا به حرام نه وی.

**د احنافو (رح) دلیل**

| وَلَنَا او زموږ دلیل دادې أَنَّهُ أَوْجَبَ الْمُمَاثَلَةَ شَرْطًا فِي الْبَيْعِ چې رسول الله ﷺ په بیع کې مماثلت شرط جوړ کړې ثابت کړې دې وَهُوَ الْمَقْصُودُ بِسَوْقِهِ اود حدیث بیانولو مقصد هم دادې. |
|---|



**تشریح:-** په دې عبارت کې د احنافو رحمهم الله د ارخه د قدرمع الجنس په علت ربوا کیدلو باندې دلیل بیان شوې دې.حاصل د دلیل دادې.چه حدیث د ،،مثلاً بمثل،، په ذریعه شارع ﷺ په بیع کې مماثلت اوبرابری شرط ګرځولې دې.څکه چه،،مثلاً بمثل،، د ترکیب نحوی په اعتبارسره حال دې.اوحال شرط وی.په دې وجه د اموال ربویه په بیع کې مماثلت کیدل ضروری اوشرط دی.اود حدیث د بیان نه مقصود هم دادې.چه د اموال ربویه په بیع کې مماثلت اوموندې شی.څکه چې د حدیث معنی ده. ﴿بیعوا هذه الأشیاء مثلاً بمثل﴾ اود بمثل باء الصاق لپاره ده.او بیعوا ،،صیغه د امر،، د وجوب لپاره ده.حالانکه بیع واجب نه ده.بلکه مباح ده.په دې وجه د صیغه امرتعلق به هغه حال سره وی.کوم چې شرط دې.اوس به ژباړه دا وی.چه،،دا شیان په وصف د مماثلت سره خرڅوئ،، یعنی خرڅول مباح دی.خوکه تاسو ئې خرڅوئ.نود شرط مماثلت رعایت ضروری دې.

| تَحْقِيقًا لِمَعْنَى الْبَيْعِ، د بیع معنی ثابتولو لپاره إِذْ هُوَ يُنْبِئُ عَنِ التَّقَابُلِ څکه چې لفظ د بیع مقابله خبر ورکوی وَذَلِكَ بِالتَّمَاثُلِ او مقابله په مماثلت سره کیږي. |
|---|

**تشریح:-** په حدیث بیانولو سره مقصود، مماثلت دې ددې علامه مرغینانی درې وجوهات بیان کړي دی رومبې وجه داده.چه دعوضینو په مینځ کې مماثلت اوبرابری موندلو په وجه د بیع معنی متحقق شی.اوکه مماثلت اوبرابری نه وی.نود بیع معنی به نه متحقق کیږي.څکه چې بیع نوم دې د ،،مبادلة المال بالمال،،او مبادله د باب مفاعله څنې دې.اود مفاعله خاصه چونکه اشتراك ده.په دې وجه دا ددې تقاضا کوی.چه په متحدالجنس کې د عوضینو نه د احدالعوضین هریو جزء د دوهم عوض هریو جزء په مقابله کې وی.اودا خبره هغه وخت کیدلې شی.چه د عوضینو په مینځ کې تماثل اوبرابری وی.څکه که یوعوض زیات او دوهم عوض کم وی.نو په زیاتی کې چې کوم مقدار د دوهم عوض نه زیات دې.هغه به د عوض نه خالی وی.او هرکله چې زیاتی مقدار د عوض نه خالی دې.نود تقابل معنی به نه متحقق کیږي. اوهرکله چې د تقابل معنی متحقق نشوه.نود بیع اومعاوضه معنی به هم متحقق نه وی.نو ثابته شوه.چه د بیع معنی ثابتولو لپاره د عوضین په مینځ کې مماثلت اوبرابری کیدل ضروری دی.

| أَوْ صِيَانَةً لِأَمْوَالِ النَّاسِ عَنِ التَّوَى یا د خلګو مالونه د هلاکت د بچ کاوه دپاره. |
|---|

**حل اللغة:** ① الصیانة-حفاظت-② التوی-هلاکت-③ تتمیم-پوره کول-④ الاتصال-یوځائې کیدل

**تشریح:-** دویمه وجه داده. چې د عوضین په مینځ کې چې د عوضین په مینځ کې مماثلت اوبرابری څکه شرط اوګرځولې شو.چه د خلګو مال هلاکیدلو نه محفوظ شی.څکه که په عوضینوکې یوعوض زیاتی وی.او دوهم کم وی.نو په زیاتی عوض کې چې کوم مقدار زیاتی وی.مبادله یعنی عقدبیع د هغه عاقد په حق کې ددې ضائع کونکې وی.کوم ته چې کم عوض ملاؤ شوې دې.څکه چې ده ته د زیاتی مقدار په مقابله کې هیڅ ملاؤ نشو.او هرکله چې ده ته د زیاتی مقدار په مقابله کې هیڅ ملاؤ نشو.نودا زیاتی مقدار دده په حق کې هلاك شو.نود مال دا زیاتی مقدار د هلاکیدلو نه د بچ کاوه لپاره د اموال ربویه بیع کې ، مماثلت اوبرابری شرط اوګرځولی شو.هم دې زیاتی مقدار ارخ ته اشاره رسول الله ﷺ اشاره کړې ده.او ﴿والفضل ربوا﴾ ئې فرمائیلی دی.یعنی د الله تعالی په قول ﴿وحرم الربوا﴾ کې د ربوا نه مراد هم دا فضل اوزیاتوالې دې.

| أَوْ تَتْمِيمًا لِلْفَائِدَةِ بِاتِّصَالِ التَّسْلِيمِ بِهِ، یا بیع سره سپارل ملاویدلو سره د بیع فائده پوره کاوه لپاره ثُمَّ يَلْزَمُ عِنْدَ فَوْتِهِ حُرْمَةُ الرِّبَا بیا د مماثلت فوت کیدلو په وخت حرمت رباء لازمیږي. |
|---|

**تشریح:-** دریمه وجه دا ده.چه د بیع فائده به هغه وخت مکمل وی.چه کله خپل مینځ کې قبضه کولوکې مماثلت اوبرابری اوموندې شی.څکه د بیع فائده داده.چه بائع د یوعوض مالك شی.او مشتری د بل عوض مالك شی.اودا مسلې شوې ده.چه نفس عقد په عوضینو باندې د عاقدینو ملك رقبه ثابتوی.اود عقدتمام کیدل تصرف ثابتوی.اوعقد هغه وخت تمامیږي.چه کله عاقدین په عوضینو باندې قبضه اوکړي.نو ثابته شوه.چه د بیع فائده په قبضه سره پوره کیږي.اوهرکله چې د بیع فائده قبضه سره پوره کیږي.نو فائده د پوره کاوه لپاره په قبضه کې

مماثلت او برابري کيدل ضروري دی. او په قبضه کې برابری داده. چه عاقدين پخپل پخپل عوض باندې قبضه اوکړی. هم دې ارخ ته په لفظ يداً بيد سره اشاره شوې ده. په دې درې واړه وجهو سره معلومه شوه. چه د حديث مقصود د مماثلت وجوب بيانول دی. نود مماثلت شرط فوت کيدلو په صورت کې به د ربوا حرام کيدل لازميږي. ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دی. ﴿والفضل ربوا﴾

وَالْمُمَاثَلَةُ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ بِاعْتِبَارِ الصُّورَةِ وَالْمَعْنَى، وَالْمِعْيَارُ اود دوې (دوه) څيزونو په منځ کې مماثلت د صورت اومعنى په اعتبار سره کيږي. يُسَوِّي الذَّاتَ، وَالْجِنْسِيَّةُ تُسَوِّي الْمَعْنَى او معيار (پيمانه) په ذات کې برابری کوی. اوهم جنس کيدل په معنى کې برابری کوی.

تشريح:- په دوې (دوه) څيزونو کې مماثلت د صورت اومعنى په اعتبارسره کيږي. ځکه چې هرمحدث د خپل صورت اومعنى په اعتبارسره موجوديږي. او قدرچونکه د تساوى فى الميعاد (يعنې د پيمانې په اعتبارسره د دوې (دوه) څيزونو د برابروالى) نوم دې. په دې وجه به صورتاً مماثلت د معيار په ذريعه حاصليږي. او جنس د،، تشاكل فى المعانى،، (يعنې د معنى په اعتبارسره د هم شکل کيدلو) نوم دې. په دې وجه به د مماثلت معنى د جنس په ذريعه حاصليږي.

علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دی. چه معيار يعنې پيمانه د ذات اوصورت په اعتبارسره دوې (دوه) شيان برابروی. او جنسيت د معنى په اعتبارسره دوې (دوه) شيان برابروی. نو يوکيل غنم او يوکيل جوارد صورت او قدرپه اعتبارسره برابر دی. په دې وجه غنم هم معنى يوکيل دې. او جوارهم يو کيل دې. خود غنمو او جوارو جنس يو نه دې. په دې وجه د معنى په اعتبارسره برابری مفقود ده.

حاصل دا شو. چه د حديث مقصد د اموال ربويه بيع کې د عوضينو په مينځ کې مماثلت شرط کيدل بيانول دی. اود مماثلت په ثابتولو کې قدر اوجنس موثر وی. ځکه چې مماثلت صوری د قدر په ذريعه حاصليږي. اومماثلت معنوی د جنس په ذريعه حاصليږي. په دې وجه دا دواړه د رباء علت اوګرځولی شو. او طعم او ثمنيت ته په مماثلت ثابتولو کې هيڅ دخل نشته. په دې وجه دا د رباء علت اُونه ګرځولی شو.

فَيَظْهَرُ الْفَضْلُ عَلَى ذَلِكَ نو زياتوالي به هم په دې ښکاره کيږي فَيَتَحَقَّقُ الرِّبَا، او ربامتحقق کيږي لِأَنَّ الرِّبَا ځکه چې ربوا هم داده هُوَ الْفَضْلُ الْمُسْتَحَقُّ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ فِي الْمُعَاوَضَةِ چې په معاوضه کې عاقدينو کې يو لپاره داسې زياتوالي وی الْخَالِي عَنْ عِوَضٍ چې دعوض نه خالي وی شُرِطَ فِيهِ او په عقدکې مشروط وی.

حل اللغة: ① يظهر-ښکاره کيږي-② الفضل-زيادت-③ المعاوضة-بدله-④ يتحقق-ثابتيږي

تشريح:- هرکله چې مماثلت شرط کيدل په قدر اوجنس سره ثابت شو. نو تفاضل به هم په دې سره ښکاره کيږي. يعنې د قدر اوجنس د اتحاد باوجود که څه عوض زياتي شو. نودې ته به فضل او ربوا وئيلی شی. ځکه چې رباء هغه زياتوالی ته وائی. کوم چې په عقدمعاوضه کې د احدالعاقدين لپاره حاصل شی. اود عوض نه خالي وی. او په عقدکې مشروط وی. مثلاً يو سړی يو قفيز غنم د دوې (دوه) قفيزه غنمو په عوض خرڅ کړل. نو په دې کې يوقفيز غنم د عوض نه بغير د يوعاقد لپاره زياتی حاصل شو. او په عقد کې مشروط دی. په دې وجه به دې ته ربوا وئيلی شی. اوکه يو قفيز غنم نې د يوقفيز غنمو په عوض خرڅ کړل. خو روسته احدالعاقدين خپل انډيوالانه ته دوې (دوه) قفيزه غنم ورکړل. نودا به رباء نه وی. د رباء د پاره په عقدکې د زياتوالي مشروط کيدل ضروري دی.

وَلَا يُعْتَبَرُ الْوَصْفُ اود وصف اعتبار نه کيږي لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ تَفَاوُتًا عُرْفًا ځکه چې په عرف کې دا تفاوت نه شمارلې کيږي.

تشريح:- په دې عبارت کې د يوسوال څواب دې. سوال دادې. چه د دوې (دوه) څيزونو په مينځ کې مماثلت چې څنګه په قدر اوجنس سره متحقق کيږي. دغه ډول په وصف سره هم مماثلت ثابتيږي. خو تاسو د مماثلت په ثابتولو کې د قدر اوجنس اعتبار کړې دې. خود وصف اعتبار مو نه دې کړې. ددې څه وجه ده؟ علامه مرغيناني رحمه الله ددې درې څوابونه ورکړې دی.



يو څواب دادې. چه په عرف عام کې چونکه د وصف په اعتبارسره تفاوت نشي شمارلې. په دې وجه به د وصف اعتبار نه وی. نو که احدالبدلين اعلى او دوهم ردى وی. نود اعلى (بهتروالى) کيدلو په اعتبارسره به فضل او زياتوالي معتبر وی. يعنې د يو عوض بهتروالي اود دوهم ردى کيدل به ربوا نشي شمارلې.

وَلِأَنَّ فِي اعْتِبَارِهِ يا په دې وجه چې ددې په اعتبار کولو کې سَدُّ بَابِ الْبِيَاعَاتِ د اخستلو خرڅولو دروازې بنديږي.

حل اللغة: ① الاعتبار-معتبر کيدل-② سد-بنديز-③ البياعات-جمع د بيع، خرڅول-④ جيد-ښه

تشريح:- دوهم څواب دادې. که د وصف په اعتبارسره د تفاوت اعتبار اوکړې شی. نو په اموال ربويه کې به د اخستلو او خرڅولو دروازې بندې شی. ځکه دا خبره ناممکنه ده. چه غنم د نورو غنمو من كل وجه مماثل وی. څه ناڅه توپير به ضرور وی. او ددې توپير په وجه به چونکه ربوا لازميږي. په دې وجه ګويا ددې څيزونو بيع ناممکن ده، حالانکه ددې څيزونو د بيع دروازه کلاؤ پرته ده. په دې وجه موږ د وصف په اعتبارسره د تفاوت اعتبار اونکړلو.

أَوْ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يا ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دی {جَيِّدُهَا وَرَدِيئُهَا سَوَاءٌ} (١) چه د اموال ربويه کره کهوټه کيدل برابر دی.

تشريح:- دريم څواب دادې. چه مدنی آقا ﷺ فرمائيلي دی. ﴿جيدها ورديها سواء﴾ يعنې په اموال ربويه کې کهرا کهوټه (اعلى، ادنى) واړه برابر دی. يعنې د کهره کهوټه په اعتبارسره تفاوت معتبر نه دې.

وَالطَّعْمُ وَالثَّمَنِيَّةُ مِنْ أَعْظَمِ وُجُوهِ الْمَنَافِعِ، اود مالی منافعو په وجود کې طعم او ثمنيت غټه وجه ده وَالسَّبِيلُ فِي مِثْلِهَا الْإِطْلَاقُ بِأَبْلَغِ الْوُجُوهِ او په دې کې او په دې کې لاره ابلغ الوجوه سره فراخي ورکول دی لِشِدَّةِ الْاِحْتِيَاجِ إِلَيْهَا ځکه چې دې ته زيات حاجت دې دُونَ التَّضْيِيقِ فِيهِ په دې کې به تنګی نشي کولې فَلَا مُعْتَبَرَ بِمَا ذَكَرَهُ نو څه چې امام شافعي رحمه الله ذکر کړی دی. د هغې اعتبار به نه کيږي.

حل اللغة: ① اعظم-لوئې-② وجوه-جمع د وجه، مقصد-③ التضييق-تنګی راوستل-④ الاحتياج-ضرورت

تشريح:- دا عبارت د امام شافعي رحمه الله د بيان شوی علت ربوا څواب دې. حاصل د څواب دادې. چې طعم اوثمنيت د حرمت ربوا علت ګرځول ټيک نه دی. ځکه چې دې دواړو سره لوئې لوئې منافع متعلق دی. چه په طعم باندې د انسان ژوند موقوف دې. او ثمنيات د ژوند د ضرورياتو حاصلولو ذريعه ده. ګويا انسان ته ددې دواړو سخت حاجت دې. اود الله تعالى عادت دې. چه انسان کوم شئ ارخ ته زيات محتاج وی. په هغې کې هغه اومره توسع (فراخي) وی. لکه هوا او اوبو ارخ ته د سخت احتياج په وجه دا ډيرزيات عام کړې شوی دی. دا دواړه شيان هرکس ته په آسانتيا حاصليږي. بلکه ډير ځله سخت حاجت حرام حلالوی. لکه په حالت د اضطرار (سخته مجبوری) کې د مردار اوخنزير خوړلو اجازت دې. نو طعم او ثمنيت ارخ ته زيات احتياج کيدل، ددې خبرې تقاضا کوی. چه په دې کې زيات نه زيات توسيع اوکړې شی. دا نه چې په دې کې تنګی اوکړې شی. اوددې د حرمت ربوا علت ګرځولو کې سراسر تنګی ده. په دې وجه دا د حرمت ربوا علت ګرځول مناسب نه دی. او امام شافعي رحمه الله چې څه ذکر کړی دی. د هغې اعتبار به نه کيږي.

### مکيلي اوموزوني څيز برابر خرڅول

إِذَا ثَبَتَ هَذَا هرکله چې دا خبره ثابته شوه نَقُولُ إِذَا بِيعَ الْمَكِيلُ أَوِ الْمَوْزُونُ بِجِنْسِهِ مِثْلًا بِمِثْلٍ نو موږ وايو. چه هرکله کيلي يا وزنی شئ ددې د هم جنس په عوض برابر برابر خرڅ کړی. جَازَ الْبَيْعُ فِيهِ نو په دې کې بيع جائز ده.

(١) قال الزيلعي رحمه الله غريب ومعناه يؤخذ من إطلاق حديث ابي سعيد الخدري رضي الله عنه الذي أخرجه مسلم في المساقاة رقم ٨٢ كذا في نصب الراية (٤/٧٤)_

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. هركله دا ثابته شوه. چه زمونږ په نيز علت ربوا ،، قدر مع الجنس،، دي. نو كه څه كيلي شي ددې هم جنس كيلي شي په عوض ياوزني شي ددې د هم جنس وزني شي په عوض برابر خرڅ كړې شي. نودا بيع جائز ده.

لِوُجُوْبِ شَرْطِ الْجَوَازِ خكه چې د جواز شرط موجود دې وَهُوَ الْمُمَاثَلَةُ فِي الْمِعْيَارِ اودا په مقدار كې برابر كيدل دي.

تشريح:- دليل دا دې چې مقتضى د بيع يعني ،، مبادلة المال بالمال بالتراضى،، هم اوموندې شو. اود بيع د جواز شرط يعني مقدار اومعيار كې برابرى هم موجود شوه.

أَلَا تَرَى آيا تاسو نه گورئ إِلَى مَا يُرْوَى مَكَانَ قَوْلِهِ مِثْلًا بِمِثْلٍ كَيْلًا بِكَيْلٍ، وَفِي الذَّهَبِ بِالذَّهَبِ وَزْنًا بِوَزْنٍ چې د مثلاً بمثل په ځاې كيلاً بكيل او ،، الذهب لذهب،، كې وزناً بوزن روايت كړې شوې دې.

تشريح:- په مقدار او معيار كې برابر خكه شرط اوګرځولې شو. چه په حديث كې د حنطه، شعير، تمر، اوملح نه روسته د مثلاً بمثل په ځاې كيلاً بكيل نقل دى. اود ذهب او فضه نه پس،، وزنا بوزن،، نقل دى. نو معلومه شوه. چه د مماثلت نه مراد هم دا دى. چه كيلي شي دكيل په ذريعه خرڅ كړې شي. او وزني شي د وزن په ذريعه سره خرڅ كړې شي. نو هر كله چې كيلي شي ددې د هم جنس كيلي شي په عوض برابر خرڅ كړې شو. او وزني شي ددې د هم جنس وزني شي په عوض برابر برابر خرڅ كړې شو. نودا جائز دى. خكه چې د بيع مقتضى اود بيع د جواز شرط دواړه موجود شو.

وَإِنْ تَفَاضَلَا اوكه كمي زياتي اوموندې شو لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دې لِتَحَقُّقِ الرِّبَا خكه چې ربوا متحقق ده.

تشريح:- اوكه تفاضل اوشو. يعني يو عوض د بل عوض نه زيات شو. نود رباء د تحقق په وجه به دا ناجائز وى.

وَلَا يَجُوْزُ بَيْعُ الْجَيِّدِ بِالرَّدِيءِ مِمَّا فِيْهِ الرِّبَا او په اموال ربويه كې كره د كهوټه په عوض خرڅول جائز نه دى. إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ مګر برابر سرابر لِإِهْدَارِ التَّفَاوُتِ فِي الْوَصْفِ خكه چې د وصف تفاوت لغو شوې دې.

حل اللغة: ① الجيد- ښه- ② الردئ- خراب- ③ الاهدار- لغو كول- ④ التفاوت- فرق

تشريح:- او جودت ( اصل اوكهره والې) چونكه ساقط الاعتبار دې. په دې وجه د اموال ربويه بيع كې كه كهره د ردى په عوض خرڅ كړې شي. نو برابر برابر خرڅول جائز وى. خو په تفاضل سره خرڅول به جائز نه وى. خكه وړاندې تيرشوى دى. چه په وصف كې تفاوت معتبر نه دې.

يوه لپه (موټې) په دوې (دوه) لپو. او يو سيب په دوې (دوه) سيوانو خرڅول

وَيَجُوْزُ بَيْعُ الْحَفْنَةِ بِالْحَفْنَتَيْنِ وَالتُّفَّاحَةِ بِالتُّفَّاحَتَيْنِ او يوه ډكه لپه د دوې (دوه) ډكو لپو په عوض او يو سيب د دوې (دوه) سيوانو په عوض خرڅول جائز دى.

حل اللغة: ① الحفنة- ډكه لپه- ② التفاحة- سيوو\سيب- ③ المساواة- برابرى- ④ الفضل- زيادت

تشريح:- حفنه: ډك موټې يعني د يولاس په موټې كې چې څومره قدرې راشي. هغې ته ،، حفنه،، وائي. او بعض وائي چه،، حفنه،، ډكې لپې ته وئيلې شي. بهرحال كه يوكس يوه لپه غنم د دوې (دوه) لپو غنمو په عوض خرڅ كړل. يا ئې يو سيب د دوې (دوه) سيوانو په عوض خرڅ كړلو. يائې يوه هګۍ د دوې (دوه) هګو په عوض خرڅ كړلې. يا ئې يو غوز د دوې (دوه) غوزانو په عوض خرڅ كړل. نودا زمونږ په نيز جائز دى.

لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ بِالْمِعْيَارِ خكه چې برابروالې په معيار سره كيږي وَلَمْ يُوْجَدْ اوهغه موجود نشو فَلَمْ يَتَحَقَّقِ الْفَضْلُ خكه به فضل نه متحقق كيږي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه يوه لپه غله او دوې (دوه) لپه غله، چونكه په څه شرعي معيار او پيمانه كې نه داخليږي.



وَلِهٰذَا كَانَ مَضْمُوْنًا بِالْقِيْمَةِ عِنْدَ الْإِتْلَافِ او هم په دې وجه د هلاكيدلو په وخت دا مضمون بالقيمت وى.

حل اللغة: ① مضمون- تاوان- ② الاتلاف- هلاكول- ③ المخلص- خلاصې- ④ يحرم- حراميږي

تشريح:- اودا يوه لپه غله خكه په شرعي مقدار كې نه داخليږي كه چا د بل چا يوه لپه غله اودوې (دوه) لپه غله، هلاك كړه. نو په هلاكونكي باندې ددې غلې ضمان بالقيمت واجبيږي. ضمان بالمثل نه واجبيږي. نوكه د غلې دا مقدار مكيلي يا موزوني وى. نو په هلاكونكي به ددې ضمان بالمثل واجب وو. خكه چې واړه مكيلات او واړه موزونات د ذوات الامثال ځنې دى. د ذوات القيم ځنې نه دى. نود دومره قدرې ضمان بالمثل نه واجبيدل ددې خبرې دليل دې. چه دا مقدار يعني يوه يا دوې (دوه) لپه د څه شرعي معيار او پيمانې لاندې نه داخليږي.

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ الْعِلَّةُ هِيَ الطُّعْمُ اود امام شافعي رحمه الله په نيز علت د رباء طعم دې وَلَا مُخَلِّصَ وَهُوَ الْمُسَاوَاةُ اود حرمت نه خلاصې يعني برابر كيدل موجود نه دى فَيَحْرُمُ په دې وجه به زياتوالې حرام وى.

تشريح:- د امام شافعي رحمه الله په نيز ناجائز دى. د امام شافعي رحمه الله په نيز خكه ناجائز دى. چه ددوى په نيز دحرمت ربوا علت طعم اوثمنيت دې. او په ذكرشوى څيزونو كې طعم موجود دې. اود حرمت ربوا نه د بچ كولو څيز مساوات اوبرابرى موجود نه ده. په دې وجه د ذكرشوى څيزونو بيع ناجائز ده. او زمونږ په نيز خكه جائز ده. چه د دوې (دوه) څيزونو په مينځ كې مساوات او برابرى د پيمانه په ذريعه معلوميږي. اود نصف صاع نه د كم لپاره په شريعت كې هيڅ پيمانه نشته. نو هر كله چې په ذكرشوى څيزونو كې د برابرى كاوه والا پيمانه نشته. نو په دې كې به زياتوالې هم متحقق نه وى. اوهر كله چې زياتوالى متحقق نشو. نو ربوا به هم متحقق نه وى. اوهر كله چې ربوا لازم نشوه. نودا به ناجائز هم نه وى.

وَمَا دُوْنَ نِصْفِ الصَّاعِ او كوم چې د نصف صاع نه كم وى فَهُوَ فِيْ حُكْمِ الْحَفْنَةِ دغه د ډكې لپې په حكم كې دې.

حل اللغة: ① دون- كم- ② نصف- نيم- ③ الصاع- دړئ- ④ الحفنة- ډكه لپه

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د نصف صاع نه كم چې كوم مقدار هم وى. هغه واړه د يو لپې په حكم كې دى.

لِأَنَّهُ لَا تَقْدِيْرَ فِي الشَّرْعِ بِمَا دُوْنَهُ خكه چې د نصف صاع نه كم ( دپاره) هيڅ مقدارى پيمانه نشته.

تشريح:- دليل دا دې چې د نصف نه دكم لپاره په شريعت كې څه معيار اوپيمانه نشته. اوبه نصف صاع باندې چونكه شريعت وارد شوې دې. لكه څنګه چې په صدقة الفطر كې دى. په دې وجه نصف صاع د شرعي معيار او پيمانې لاندې داخليږي.

اوس حاصل دا شو. چه دواړه عوض كه نصف صاع ته نه رسيږي. او په دې كې يو عوض كم وى. او دوهم عوض زيات وى. نودا بيع به جائز وى. اوكه يو عوض نصف صاع ته رسيږي. او بل نه رسيږي. نودا به جائز نه وى.

وَلَوْ تَبَايَعَا مَكِيْلًا أَوْ مَوْزُوْنًا غَيْرَ مَطْعُوْمٍ بِجِنْسِهِ مُتَفَاضِلًا اوكه يو غير مطعوم مكيلي يا موزوني شي ددې د هم جنس په عوض كمي زياتي سره خرڅ كړې شو كَالْجِصِّ وَالْحَدِيْدِ لكه چونه او اوسپنه لَا يَجُوْزُ عِنْدَنَا نو زمونږ په نيز جائز نه دى لِوُجُوْدِ الْقَدْرِ وَالْجِنْسِ خكه چې قدر او جنس موجود دې.

حل اللغة: ① قدر- مقدار- ② الجص- چونه- ③ الحديد- اوسپنه- ④ عدم- غيرموجود

تشريح:- كه غيرماكول او غيرمشروب مكيلي شي ددې د هم جنس په عوض په كمي زياتي سره خرڅ كړې شي. مثلاً يو قفيز چونه د دوې (دوه) قفيزه چونې په عوض خرڅ كړى. يا غيرماكول او غيرمشروب موزوني شي ددې هم جنس په عوض كمي زياتي سره خرڅ كړې شي. مثلاً يومن اوسپنه د دوې (دوه) منه اوسپنې په عوض خرڅ كړى. نودا زمونږ په نيز ناجائز دى. خكه چې علت ربوا ،، قدرمع الجنس،، يعني كيل مع الجنس يا وزن مع الجنس اوموندې شو.

وَعِنْدَهُ يَجُوزُ او د امام شافعي په نيز جائز دی لِعَدَمِ الطُّعْمِ وَالثَّمَنِيَّةِ ځکه چي طعم او ثمنيت موجود نه دي.

تشريح:- د امام شافعي رحمه الله په نيز جائز دی. ځکه چي نه طعم اوموندې شو. اونه ثمنيت موجود شو. حالانکه ددوی په نيزهم دا شيان علت ربوا دی.

## د دواړه وصفونو معدوم کېدلو په صورت کښې د کمې، زياتې او د پور حکم

قَالَ وَإِذَا عُدِمَ الْوَصْفَانِ فرمائي. اوکه دواړه وصف معدوم وی الْجِنْسُ يعني جنس وَالْمَعْنَى الْمَضْمُومُ إِلَيْهِ او کومه معنی چي ددې سره ملاؤ کړې شوې ده حَلَّ التَّفَاضُلُ وَالنَّسَاءُ نو کموالي، زياتوالي او پور دواړه حلال دی.

حل اللغة: ① تفاضل-يو دبل نه زياتي- ② النساء-قرض- ③ الاباحت-مباح والي- ④ المحرمة-حراموونکې

تشريح:- دا ثابته شوې ده. چه زمونږ په نيز علت ربوا دوې (دوه) شيان دی. يو قدر او دوهم جنس. عقلي طورباندې ددې درې صورتونه دی.

يوصورت دا دې چي دواړه شيان معدوم وی نو په دې صورت کي به تفاضل او نساء (قرض) دواړه حلال وی. يعني د احدالبدلين کم او د دوهم زيات کېدل هم حلال دی.

لِعَدَمِ الْعِلَّةِ الْمُحَرِّمَةِ ځکه چي د حراموالي علت موجود نه دې وَالْأَصْلُ فِيهِ الْإِبَاحَةُ او په دې کي اصل اباحت دې.

تشريح:- دليل دا دې چي په دې صورت کي د حرمت ربوا علت موجود نشو. او په بيع کي اصل اباحت دې. الله تعالى ارشاد دې ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ﴾ نو هر کله چي اباحت اصل دې. او د حرمت علت موجود نه دې. نودا بيع به حلال وی. که په تفاضل سره وی. اوکه د تفاضل نه بغير وی. که په قرضو وی. اوکه په نغدو وی. په هرصورت کي به جائز وی.

وَإِذَا وُجِدَا او هر کله چي دواړه وصف موجود وی حَرُمَ التَّفَاضُلُ وَالنَّسَاءُ نو کمې زياتې او پور حرام دي لِوُجُودِ الْعِلَّةِ ځکه چي علت د ربوا موجود دي.

تشريح:- دوهم صورت دا دې چي دواړه موجود وی يعني متحد القدر والجنس وی نو د دوی د يو بل سره په تبادله کي په شرعي لحاظ سره دوې (دوه) شيان ضروری دی يو دا چي دواړه په وزن او پيمانه کي برابر وی دوهم چي دواړه لاس په لاس وی مثلاً دوې (دوه) نفر غنم په غنمو بدلول غواړی نو په دې کي کمې زياتې جائز نه دې اونه دا جائز دي چي يو کس هم د عقد په وخت کي غنم واخلي او بل کس څه موده روسته واخلي بلکه په يو مجلس کي يو بل ته خپل خپل حق سپارل ضروری دی

وَإِذَا وُجِدَ أَحَدُهُمَا اوکه په دې دواړو کي يو وصف موجود وی وَعُدِمَ الْآخَرُ او دوهم معدوم وی حَلَّ التَّفَاضُلُ نو کمې زياتې حلال دي وَحَرُمَ النَّسَاءُ او پور حرام دې مِثْلُ أَنْ يُسْلِمَ هَرَوِيًّا فِي هَرَوِيٍّ لکه هروی تهان د هروی تهان په عوض د بيع سلم په طور خرڅ کړی أَوْ حِنْطَةً فِي شَعِيرٍ يا غنم د اوربشو په عوض فَحُرْمَةُ رِبَا الْفَضْلِ بِالْوَصْفَيْنِ نو د زياتوالي ربوا حرمت دوې (دوه) وصفونو سره دې وَحُرْمَةُ النَّسَاءِ بِأَحَدِهِمَا او د پور حرمت يو وصف سره دې.

تشريح:- دريم صورت دا دې چي يو وصف موجود وی. او يو معدوم وی. نو تفاضل به حلال وی. او پور به حرام وی مثلاً يو کس يو هروی تهان د دوې (دوه) هروی تهانونو په عوض خرڅ کړل. نو په دې صورت کي جنس اوموندې شو. ځکه چي د دواړو عوضونو جنس يو دې. خو قدر او نه موندې شو. ځکه چي کپړه نه د مکيلاتو څخه ده. اونه د موزوناتو څخې ده. بلکه د مذروعات (ګزونو) څخې ده. نو يو تهان د دوې (دوه) تهانونو په عوض خرڅول جائز دی. خو يو تهان د يو تهان په عوض په قرضو خرڅول جائز نه دی. اوکه غنم د اوربشو په عوض خرڅ کړی. نو په دې صورت کي قدر موجود دې. خو جنس موجود نه دې. د جنس نه موجود کېدل خو ښکاره دی. او قدر ځکه موجود دی. چه دواړه عوضونه د مکيلاتو څخې دی. نود غنمو بيع د اوربشو په عوض په کمې زياتې سره جائز ده. خو په پور جائز نه ده. حاصل دا شو چه زياتوالي سره حرمت ربوا کېدل په دوې (دوه) وصفونو سره دی. او په پور حرام



کېدل په يو وصف سره دی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْجِنْسُ بِانْفِرَادِهِ لَا يُحَرِّمُ النَّسَاءَ او امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دی چه يواځې جنس پور نشي حراموولې لِأَنَّ بِالنَّقْدِيَّةِ وَعَدَمِهَا لَا يَثْبُتُ إِلَّا شُبْهَةُ الْفَضْلِ، وَحَقِيقَةُ الْفَضْلِ غَيْرُ مَانِعٍ فِيهِ حالانکه د جنس په صورت کي حقيقة زياتوالي د بيع مانع نه دي حَتَّى يَجُوزَ بَيْعُ الْوَاحِدِ بِالِاثْنَيْنِ تر دې چي يو هروی تهان د دوې (دوه) هروی تهانونو په عوض خرڅول جائز دی فَالشُّبْهَةُ أَوْلَى نو د زياتوالي شبه به په درجه اولیٰ مانع نه وی.

حل اللغة: ① الانفراد-خانله- ② الاثنين-دوه- ③ تحقق-ثابت شو- ④ النقدية-نغد

تشريح:- د حضرت امام شافعي رحمه الله مذهب دا دې چه جلا جنس پور نه حراموی. يعني که د دواړو عوضينو جنس يو وی. او طعم يا ثمنيت نه وی. نو ددوی په نيز پور به هم حرام نه وی.

د امام شافعي رحمه الله دليل دا دې. چه د يو عوض نغد او د يو پور کېدل زيات نه زيات د زياتوالي شبه پيداکوی. ځکه چي نسيئة (قرض) نوم دی. د مطالبه مؤخر کولو. او مطالبه مؤخر کول په حقيقت کي زياتوالې نه دې ځکه چي په مطالبه مؤخر کولوکي حکماً ماليت متفاوت وی. په حقيقت کي متفاوت نه وی. نو هر کله چي په تاخير سره د زياتوالي شبه ثابت شوه. د حقيقي زياتوالي شبه ثابت نه ده. او صرف د جنس موجود کېدلو په صورت کي حقيقي زياتوالې د بيع جواز نه مانع نه وی. لکه يو هروی تهان د دوې (دوه) هروی تهانونو په عوض خرڅول جائز دی. نو د زياتوالي شبه يعني يو عوض نغد او د يو پور کېدل به په درجه اولی د بيع د جواز نه مانع نه وی.

صاحب د عنايه او علامه عيني رحمه الله فرمائي. چه د امام شافعي رحمه الله مذهب بيانولوکي خاص طور باندې د جنس په ذکر کولوکي څه خاص فائده نشته. ځکه چي د امام شافعي رحمه الله په نيز که صرف قدر موجود وی. او جنس موجود نه وی. بيا هم دا حکم دې. يعني په پور سره جائز دی. لکه که يو کس يو من اوسپنه د يو من اوسپنې يا قلعي (يو ډول دهات) په عوض يا د يو من نه د زيات په عوض پور خرڅه کړله. يعني بيع سلم ئې اوکړلو نو ددوی په نيز جائز دی. حاصل دا شو. چه قدر يا جنس يو هم خانله. وصف نساء (قرض) نه حراموی. ګويا امام شافعي رحمه الله د حرمت نساء بالکل انکار کوی.

وَلَنَا او زمونږ دليل دا دې أَنَّهُ مَالُ الرِّبَا مِنْ وَجْهٍ نَظَرًا إِلَى الْقَدْرِ أَوِ الْجِنْسِ چي دا په اعتبار د قدر يا په اعتبار د جنس، من وجه مال ربوا دې وَالنَّقْدِيَّةُ أَوْجَبَتْ فَضْلًا فِي الْمَالِيَّةِ او د يو اړخ نه نغد کېدل په ماليت کي زياتوالي واجبوی فَتَتَحَقَّقُ شُبْهَةُ الرِّبَا نو د ربوا شبه متحقق شوه. او د ربوا شبه هم ددې بيع د جواز نه مانع ده وَهِيَ مَانِعَةٌ كَالْحَقِيقَةِ لکه څنګه چي حقيقت د ربوا مانع دې.

تشريح:- زمونږ دليل دا دې. چه په باب د رباء کي يو حقيقت د ربوا وی. او يو شبهة الربوا وی. او د ربوا شبه چي کله د ربوا د حقيقت نه جلا اوموندې شی. نو دا د يو محل محتاج وی. او د يو علت محتاج وی. لکه چي حقيقت ربوا ددې دواړو محتاج وی. او دا ممکن نه ده. چه د شبة الربوا محل او ددې علت هم هغه وی. کوم چي د حقيقت ربوا محل او علت دې. ځکه که داسې اوشو. نو شبهة الربوا به شبهة الربوا پاتې نشی. بلکه حقيقت ربوا به شی. او د حقيقت ربوا مقارن به شی. حالانکه دا خلاف مفروض دې. په دې وجه د شبهة الربوا لپاره شبة محل او شبة علت کېدل ضروری دی. او په کومه بيع کي چي نساء حرام ده. په هغې کي عوضين من وجه مال ربوا دې. ځکه چي په عوضينو کښې به يا اتحاد قدر وی. لکه د غنمو بيع د اوربشو په عوض، يا به اتحاد جنس وی. لکه د هروی کپړې بيع د هروی کپړې په عوض، او دا خبره منلې شوې ده. چه د ربوا د علت نصاب دوې (دوه) وصفونه يعني د قدر او جنس مجموعه ده. په دې وجه په دې کي يو د ربوا علت نشی کېدلې. البته شبة علت کېدلې شی. او شبهة العلت نه شبهة الحکم يعني شبهة الربوا ثابتيږی. حقيقت ربوا نه ثابتيږی. نو هر کله چي يو عوض نغد وی. او يو عوض پور وی. نو نغد کېدل په ماليت کي زياتوالې پيدا کوی. لکه چي د ﴿النقد خير من النسيئة﴾ مقوله نه ښکاره معلوميږی. نو په نغد کېدلو سره په دې محل يعني د نغد په عوض کي د ربوا شبه پيدا کوی. او شبهة الربوا د بيع د جواز نه هم دغه ډول مانع

دي لکه څنګه چې حقیقت ربوا مانع دي. څکه چې رسول الله ﷺ د ربوا او ریبه (شبهة الربوا) دواړو نه منع فرمائیلي ده. نو ثابته شوه. چه د احدالوصفین یعني د قدر یا جنس موجودیدل نساء (قرض) حراموي.

هم ددې شبهة الربوا په وجه اموال ربویه په اندازه سره خرڅول جائز نه دی. مثلاً یوسړی د غنمو یو ډیرې د غنمو د یویل ډیرې په عوض اندازه سره خرڅ کړلو. اودا دواړه ډیرې په کتلوکي برابر دی. بیا هم جائز نه دی. څکه چې په دې کې د زیات والی شبهه ده. ددې نه هم معلومه شوه. چه شبهة الربوا د بیع د جواز نه مانع دې. بلکه د امام زفر رحمه الله نه علاوه احناف فقهاؤ تردې پورې ونیلی دی. چه د غنمو یو ډیرې د بل ډیرې په عوض اندازه سره خرڅ کړې. بیا دواړه ډیرې کیل کړې. او دواړه برابر شي. نو بیاهم زموږ په نیز جائز نه دی.

إِلَّا أَنَّهُ إِذَا أَسْلَمَ النُّقُودَ فِي الزَّعْفَرَانِ وَنَحْوِهِ خو کله چې نقود د زعفران او ددې پشان بیع سلم کې ورکړې يَجُوزُ نو جائز دی وَإِنْ جَمَعَهُمَا الْوَزْنُ اګرچه دې دواړو ته وزن جامع دې.

تشریح:- د صاحب هدایه رحمه الله قول ﴿إلا أنه إذا أسلم النقود في الزعفران﴾ د صاحب هدایه رحمه الله عبارت ﴿فاذا وجد احدهما وعدم الآخر حل التفاضل وحرم النساء﴾ نه مستثنی شوې دې. یعني وړاندې تیرشوی دی. چې په قدر یا جنس کې یو وصف موجود وی. او یومعدوم وی. نو تفاضل حلال اونساء حرام وی. خو یوصورت ددې نه مستثنی دې. هغه داکه نقود یعني سره یا سپین زر، زعفران یا ددې پشان د مالوچو او اوسپنې وغیره په بیع سلم کې ورکړلی شو. یعني نقود ادا کړې شو اومسلم فیه یعني زعفران یا مالوچ وغیره یو معلوم میعاد پورې پور کړې شو. نودا جائز دی اګرچه نقود او زعفران دواړه وزنی دی. یعني په نقود او زعفران کې احدالوصفین یعني د قدرموجود کیدلو تقاضا خودا وه. چه نساء حرام وی. خو ددې باوجود نساء حرام نه ده.

لِأَنَّهُمَا لَا يَتَّفِقَانِ فِي صِفَةِ الْوَزْنِ، څکه چې دواړه وصفونه په وزن کې برابر نه دی فَإِنَّ الزَّعْفَرَانَ يُوزَنُ بِالْأَمْنَاءِ څکه چې زعفران په منونو سره وزن کولای شی وَهُوَ مُثَمَّنٌ او هغه ثمن دې يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ، په متعین کاوه سره متعین کیږي وَالنُّقُودُ تُوزَنُ بِالسَّنَجَاتِ او نقود د کانړو په تلې (سنګ ترازو) سره وزن کولای شی وَهُوَ ثَمَنٌ لَا يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ او هغه ثمن دی. په متعین کاوه سره نه متعین کیږي.

حل اللغة: ① یتفقان- تثنیه د یتفق، متفق کیږي- ② الامناء- جمع د من، من- ③ السنجات- جمع د سنجة، د کانړی تله- ④ توزن- وزن کولې شي

تشریح:- څکه چې نقود اوزعفران اګرچه دواړه وزنی دی. خود وزن صفت اود وزن معنی اود وزن په حکم کې دواړه (یعني زعفران او نقود) مختلف دی. د وزن په صفت کې اختلاف څکه دې. چه زعفران په من اوسیر سره تللې شي. او نقود د کانړو په تله (سنګ ترازو) یعني مثاقیل اودراهمو سره تللې شي. داخیال ساتل پکار دی. چه دلته کې د من او سیرنه مراد د نن سهار من اوسیر مراد نه دې. بلکه دا من به ډیر وړوکی اود کم وزن وو.

وَلَوْ بَاعَ بِالنُّقُودِ مُوَازَنَةً او که د نقود په عوض وزن سره زعفران خرڅ کړل وَقَبَضَهَا او بائع په نقود باندې قبضه اوکړله صَحَّ التَّصَرُّفُ فِيهَا قَبْلَ الْوَزْنِ، نود وزن کاوه نه وړاندې په نقود کې بائع لپاره تصرف کول صحیح دی وَفِي الزَّعْفَرَانِ وَأَشْبَاهِهِ لَا يَجُوزُ او زعفران او ددې پشان نوروخیزونوکي مشتری لپاره د وزن کاوه نه وړاندې تصرف کول جائز نه دي.

تشریح:- اود زعفران او نقود دواړو په وزن کې معنی اختلاف څکه دی. چه نقود په متعین کولوسره نه متعین کیږي. اودا ثمن وی. او زعفران مثمن وی. په متعین کاوه سره متعین کیږي. اود وزن په حکم کې اختلاف څکه دې. که یوکس د نقود په عوض دوزن په حساب سره زعفران خرڅ کړل. مثلاً خالد یو من زعفران د زرو د وزن برابر په عوض په حامد باندې خرڅ کړل. یعني خالد یومن زعفران خرڅ کړل. او زرمثقاله سره زر نې ثمن مقرر کړل. او بائع د مشتری په غیرموجودګۍ کې زعفران وزن کړل. اومشتری ته نې اوسپارل. نومشتری لپاره د دوباره وزن کاوه نه وړاندې په دې کې د تصرف کاوه اجازت نشته. اوکله چې مشتری د بائع په غیرموجودګۍ کې



نقود وزن کړل. او بائع ته نې اوسپارل. نود دوباره وزن کاوه نه وړاندې بائع لپاره په نقودکې تصرف کول جائز دی. د تصرف مطلب دادی. چه بائع ددې نقود په عوض څه بل شئ اخستلې شی. اودا هبه یا صدقة کولې شی.

فَإِذَا اخْتَلَفَا فِيهِ صُورَةً وَمَعْنًى وَحُكْمًا نو هرکله چې دوې (دوه) شیان په وزن کې د صورت، معنی اود حکم په اعتبار سره مختلف وی لَمْ يَجْمَعْهُمَا الْقَدْرُ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو وزن به دې ته من کل وجه جامع نه وی فَتَنْزِلُ الشُّبْهَةُ فِيهِ إِلَى شُبْهَةِ الشُّبْهَةِ په وزن کې موجود شبه به، شبهة الشبهه اړخ ته راکوزولې شی وَهِيَ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ او شبه الشبه غیرمعتبر ده.

تشریح:- نو هرکله چې نقود اوزعفران د وزن په صفت، معنی اوحکم په اعتبار سره مختلف دی. نو په دې دواړو کې اتحاد قدر، من کل وجه، اونه موندې شو. اوهرکله چې اتحاد قدر، من کل وجه، اونه موندې شو. نو په دې کې به شبهة الربوا د شبهة الشبهه په درجه کې شی. څکه وړاندې تیرشوی دی. چه دوې (دوه) موزونی شیان که من کل وجه په وزن کې متفق وی. اود دواړو جنس یو نه وی. نو په دې صورت کې نساء (قرض) د شبهة ربا په وجه حرامیږي. اوهرکله چې دواړه په وزن کې هم متفق نه وی. نودا به شبهة وزن وی. نو هرکله چې خالله د وزن په وجه شبهة الربوا پیداکیږي. نود شبهة وزن په وجه به شبهة الشبهه پیداکیږي. یعني د شبهة وزن په وجه به د ربوا د شبهة شبه پیداکیږي. او په شریعت داسلام کې شبه معتبر ده. خوشبهة الشبه معتبر نه ده. په دې وجه د نقود په عوض د زعفران بیع سلم یعني پور جائز دې.

**په نص کښې دکیلي او وزني څیز د همیشه والي حکم**

قَالَ وَكُلُّ شَيْءٍ نَصَّ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ عَلَى تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ فِيهِ كَيْلًا فرمائی. او رسول الله ﷺ چې په کومو څیزونوکې د کیل په ذریعه د زیاتوالې د حرمت تصریح فرمائیلې ده فَهُوَ مَكِيلٌ أَبَدًا هغه به همیشه کیلی وی وَإِنْ تَرَكَ النَّاسُ الْكَيْلَ فِيهِ اګرچه خلګو په دې کې کیل کول پریښودې وی. مِثْلُ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالتَّمْرِ وَالْمِلْحِ لکه غنم، اوربشې، چوارې، مالګه.

حل اللغة: ① تحریم- حراموول- ② الترک- پریخودل- ③ الناس- خلق- ④ الحنطة- غنم ⑤ الشعیر- اوربشې- ⑥ التمر- قجوره- ⑦ الملح- مالګه- ⑧ التفاضل- یوپه بل زیاتی کیدل

تشریح:- مسئله داده. چه په عهدرسالت کې کوم څیزکیلی وو. یعني چې رسول الله ﷺ اوصحابه کرامو رضي الله عنهم به په هغې کې په کیل سره معامله کوله. هغه به همیشه کیلی شمارلې شی. اګرچه خلګو په دې کې په کیل سره معامله کول پریخودی وی. لکه غنم، اوربشې، چوارې، او مالګه. نو په دې څیزونوکې به مساوات اوبرابری د کیل په ذریعه معتبر وی. د وزن په ذریعه به معتبر نه وی. که غنم د غنمو په عوض خرڅ کړې شو. او برابری د وزن په ذریعه اوکړې شوه. د کیل په ذریعه اونکړې شوه. نودا جائز نه ده. څکه چې غنم په عهدرسالت کې کیلی وو. څکه به په دې کې د قیامته پورې هم د کیل په ذریعه مساوات او برابری معتبر وی. د وزن په ذریعه به معتبر نه وی.

وَكُلُّ مَا نَصَّ عَلَى تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ فِيهِ وَزْنًا و په کوم شئ کې چې رسول الله ﷺ د وزن په اعتبارسره د زیاتوالی د حرمت صراحت فرمائیلې دی. فَهُوَ مَوْزُونٌ أَبَدًا، هغه به همیشه وزنی وی وَإِنْ تَرَكَ النَّاسُ الْوَزْنَ فِيهِ اګرچه خلګو په دې کې وزن کول پریښودې وی مِثْلُ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لکه سره زر او سپین زر.

تشریح:- اوکوم شئ چې په عهدرسالت کې وزنی وو. یعني خلګو به په دې کې په وزن سره معامله کوله. نوهغه به همیشه وزنی شمارلې کیږي. اګرچه په دې کې خلګو په وزن سره معامله کول پریخودی وی. لکه سره زراو سپین زر. تردې که سره زر د سرو زرو په عوض خرڅه شوه. اود کیل په ذریعه برابری اوکړې شوه. د وزن په ذریعه اونکړې شوه. نودا به جائز نه وی.

لِأَنَّ النَّصَّ أَقْوَى مِنَ الْعُرْفِ څکه چې نص په نسبت د رواج او عرف زیات قوی وی وَالْأَقْوَى لَا يُتْرَكُ بِالْأَدْنَى. او اقوی د ادنی په وجه نشی پریخودلې.

**حل اللغة:** ① **نص**-دشريعت دليل ② **الاقوى** -زيات قوي -③ **الادنى**-معمولي-④ **يترك**-پريښودې شي

**تشريح:**- ددې دليل دادې چه عرف حجت كيدل صرف د هغه خلګو په حق كي دې.چه دچا عرف وي.اودا چې دچا عرف نه وي.د هغوي په حق كي عرف حجت نه وي.او نص د ټولو په حق كي حجت وي.ددې نه هم معلومه شوه.چه نص د عرف په مقابله كي اقوي دې.او اقوي د ادنى په وجه نشي ترك كيدلې.په دې وجه د خيزونو په مكيلي ياموزوني كيدلو كي حديث رسول ﷺ يعنى نص د خلګو د عرف اورواج په وجه نشي ترك كيدلې.او هركله چې نص د عرف په وجه نشي ترك كيدلې.نود كومو خيزونوچه په نص يعنى حديث سره مكيلي كيدل ثابت دي.هغه به ترقيامته مكيلي وي.اود كومو خيزونو چې موزوني كيدل ثابت دي.هغه به هميشه موزوني وي.د عرف او رواج په وجه به په دې كي هيڅ توپير نه واقع كيږي.

### په كومو خيزونو چې نص وارد نه وي د هغې حكم

وَمَالَمْ يُنَصَّ عَلَيْهِ او په كوم خيزكي چې نبى كريم ﷺ صراحت نه وي فرمائيلې فَهُوَ مَحْمُولٌ عَلَى عَادَاتِ النَّاسِ هغه د خلګو په عادتونو باندې محمول دى لِأَنَّهَا دَلَالَةٌ ځكه چې عادت هم دليل حكمى دې.

**تشريح:**- ابو الحسين قدوري ﷫ فرمائى.چه د كوموخيزونو په كيلي يا وزني كيدلو باندې نص موجود نه دې.د هغه خيزونو كيلي يا وزني كيدل به د تجارت والو په عادت باندې محمول وي.يعني كه دوى د كيل په ذريعه كاروبار كوي.نوهغه شئ به كيلي شمارلې كيږي.اوكه په څه شئ كي د وزن په ذريعه كاروبار كوي.نوهغه شئ به وزني شمارلې كيږي.ځكه چې په كومو خيزونو كي چې د خلګو عادت واقع شوې دې.په هغې كي د حكم په جواز باندې د خلګو عادت دليل وي.لكه چې د رسول اكرم ﷺ ارشاد دې. «مارآه المسلمون حسناً فهو عند الله حسن» حاصل دادې.چه د نص نه موجود كيدلو په صورت كي عرف اود خلګو رواج په منزله د اجماع وي.او اجماع شرعي حجت دې.په دې وجه ديو شئ په مكيلي ياموزوني كيدلو باندې د نص نه موجود كيدلو په صورت كي د تاجرانو عادت او ددوى عرف ته اعتبار وي.كه په يوخيز كي دوى د كيل په ذريعه معامله كوي.نوهغه شئ به كيلي شمارلې شي.اوكه د وزن په ذريعه معامله كوي.نو هغه شئ به وزني شمارلې شي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ اود ابويوسف ﷫ نه روايت دې أَنَّهُ يُعْتَبَرُ الْعُرْفُ عَلَى خِلَافِ الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ أَيْضًا [1] چې دمنصوص عليه خلاف به هم عرف معتبر وي.

**تشريح:**- د امام ابويوسف ﷫ نه روايت دې.چه د منصوص عليه نه خلاف هم عرف معتبر وي.يعني كه د يوخيز مكيلي كيدل منصوص وي.خو عرف ددې په وزني كيدلو باندې جاري وي.نودا به وزني شمارلې كيږي.اوكه د يوخيز وزني كيدل منصوص وي.خو عرف ددې په مكيلي كيدلو جاري دې.نودا به مكيلي شمارلې كيږي.

لِأَنَّ النَّصَّ عَلَى ذَلِكَ لِمَكَانِ الْعَادَةِ فَكَانَتْ هِيَ الْمَنْظُورُ إِلَيْهَا ځكه چې په دې باندې نص د عادت په وجه دې.نود عادت لحاظ به ساتلې شي وَقَدْ تَبَدَّلَتْ حالانكه عادت بدل شو.

**حل اللغة:** ① **المنظور**-خيال ساتلې شوې-② **الحنطة**-غنم-③ **متساوى**-يوبل سره برابر-④ **متماثل**-ديوبل پشان

**تشريح:**- دليل دا دې چې په عهدرسالت كي په مكيلي خيزونوكي په كيل كاوه باندې او په موزوني خيزونوكي په وزن كاوه باندې چې كوم نص وارد شوې دې.دا دهغه زمانې د خلګو د عادت په وجه وو.نو عادت مقصود شو.بيا چې كله روسته زمانه كي عادت بدل شو.نو ددې په مطابق به حكم ثابتيږي.يعني كله چې په عهدرسالت كي د غنم وغيره اخستل خرڅول.په كيل سره كيدلو.نو هغه به كيلي شمارلې كيږي.

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف ﷫ كذا فى الدرالمختار(۲۰۲/٤) وفتح القدير(۱۵۷/٦) والكفاية (۱۵۷/٦) وشرح المجلة (۸۷،۸٦/۱) نقلاً عن القول الراجح (۵۸/۲)-



اَزمول.د اړخه د ابويوسف ﷫ د دليل ځواب دادې.چه هركله رسول الله ﷺ د خپلې زمانې خلګ د غنمو وغيره كي په كيل سره معامله كاوه باندې اوكتل.او نبى كريم ﷺ په دې باندې سكوت اختيار كړلو.نودا سكوت اختيارول.د نص په مرتبه كي شو.او نص په عرف او رواج سره نه متغير كيږي.ځكه چې عرف د نص معارض نشي كيدلې.

فَعَلَى هَذَا نوهم په دې قاعده باندې لَوْ بَاعَ الْحِنْطَةَ بِجِنْسِهَا مُتَسَاوِيًا وَزْنًا، أَوِ الذَّهَبَ بِجِنْسِهِ مُتَمَاثِلًا كَيْلًا كه غنم د غنمو په عوض وزن سره برابر،يا سره زر د سرو زرو په عوض كيل سره برابر، خرڅ كړي لَا يَجُوزُ عِنْدَهُمَا نود طرفينو ﷫ په نيز جائز نه دى وَإِنْ تَعَارَفُوا ذَلِكَ اګرچه په خلګ وكي ددې رواج پرخپاره شوې (خور شوې)دې.

**تشريح:**- د طرفينو اود امام ابويوسف ﷫ په مينځ كي به ثمره د اختلاف په دې مثال كي ښكاره كيږي.چه يوسړي غنم د غنمو په عوض خرڅ كړل.او په دواړه عوضونوكي په وزن سره برابري اوكړې شوه.يعني لين دين په وزن سره اوكړې شو.يا سره زر د سروزرو په عوض خرڅ كړې شو.او برابري د كيل په ذريعه اوكړې شوه.يعني لين دين په پيمانه اوكيل سره اوكړې شو. نودا صورت د طرفينو ﷫ په نيز ناجائز دې.اګرچه غنم په اصل كي كيلي دى.او سره زر په اصل كي وزني دى.او د ابويوسف ﷫ په نيز جائز دې.ځكه چې د عرف مطابق وزني شئ د وزن په ذريعه برابر كړې شو.او كيلي شئ د كيل په ذريعه برابر كړې شو.

إِلَّا أَنْ يَتَوَهَّمَ الْفَضْلُ عَلَى مَا هُوَ الْمِعْيَارُ فِيهِ، ځكه چې په دې كي كوم معيار وو.په دې باندې د زياتوالي وهم دې كَمَا إِذَا بَاعَ مُجَازَفَةً لكه كله نې چې په اندازه سره خرڅ كړې وي

**حل اللغة:** ① **المجازفة**-اټكل\اندازه-② **الحنطة**-غنم-③ **زيادة**-زياتوالي-④ **عظم**-غټوالي

**تشريح:**- اوغنم د وزن په ذريعه برابرولو سره دا نه لازميږي.چه دا د كيل په ذريعه هم برابر وي.بلكه د كيل په ذريعه د كمي زياتي شبه پاتې ده.ځكه ډيره ممكن ده.چه د يو اړخ غنم لړ لامده وي.اود بل اړخ غنم اوچ وي.نو يومن لامده غنم چې په كوم لوخي كي راتلې شي.په هغه لوخي كي يو من اوچ غنم نشي راتګ ې.بلكه څه غنم به پاتې كيږي.دغه ډول كوم سره زر چې د كيل په ذريعه برابر كړې شو.ضروري نه ده.چه دا د وزن په ذريعه هم برابر وي.حاصل دا شو.چه د اصل معيار په اعتبار سره د زياتوالي شبه ده.اوپه اموال ربويه كي دزياتوالي او ربوا شبه دغه ډول حرام ده.لكه ځنګه چې حقيقت ربوا حرام ده.لكه ځنګه چې غنم د غنمو په عوض او سره زر د سرو زرو په عوض په اندازه سره خرڅول ناجائز دى.

إِلَّا أَنَّهُ يَجُوزُ الْإِسْلَامُ فِي الْحِنْطَةِ وَنَحْوِهَا وَزْنًا خو په غنمو او ددې پشان نورو خيزونوكي د وزن په اعتبار سره بيع سلم كول جائز دى. لِوُجُودِ الْإِسْلَامِ فِي مَعْلُومٍ ځكه چې بيع سلم په معلوم مقدار كي موجود شو.

**تشريح:**- اود طرفينو ﷫ په نيز كه په مكيلي شئ كنبي د وزن په اعتبار سره بيع سلم اوكړې شوه.نوجائز ده.مثلاً يو كس زر روپۍ راس المال د لس منه غنمو په عوض د يومياشت په وعده باندې مسلم اليه ته وركړلې. يعني زر روپۍ پيشكى ( ايډوانس) ئې مسلم اليه ته يس وركړلو.چه مسلم اليه په يوه مياشت كي لس منه غنم وركړي.نودا جائز دى.ځكه چې په بيع سلم كي مساوات او برابري معتبر نه ده.بلكه د مسلم فيه په داسې طريقه معلوميدل معتبردى.چه په هغې سره دمسلم فيه سپارلو په وخت جګړه پيدانشى.اود غنمو د وزن مقدار بيانولوسره مسلم فيه يعني غنم معلوميږي.په دې وجه د غنمو بيع سلم د وزن په اعتبارسره جائز اوصحيح ده.

### رطلا خرڅيدونكي خيز وزني وي

قَالَ وَكُلُّ مَا يُنْسَبُ إِلَى الرِّطْلِ فرمائي.او هرهغه شئ چې رطل اړخ ته منسوب كيږي فَهُوَ وَزْنِيٌّ هغه وزني دې مَعْنَاهُ او ددې مطلب دادې مَا يُبَاعُ بِالْأَوَاقِي لِأَنَّهَا قُدِّرَتْ چې كوم شئ اوقيه سره خرڅيږي،هغه وزني دې بِطَرِيقِ الْوَزْنِ ځكه چې ددې اندازه د وزن په طريقه كيږي حَتَّى يُحْتَسَبَ مَا يُبَاعُ بِهَا وَزْنًا تردې چې كوم شئ اوقيه سره خرڅولې شي.هغه وزني شمارلې شي.

تشریح:- رطل: د،،را،، په فتحه اوکسره دواړو سره وئیلې شي.رطل څوپخپله یوظرف او لوښې دې.دغه ډول اوقیه پخپله یو ظرف او لوښې دې.خو په دې سره چې د کومو څیزونو اخستل خرڅول کیږي.هغه شئ وزني شمارلې کیږي.

صورت د مسئلې دا دې که څه بهیدونکي شئ تیل، شیدې وغیره د رطل یا اوقیو په ذریعه خرڅ کړې شو.یا واخستلې شو.نو ددې نه وزن مراد وي.څه پیمانه مراد نه وي.ځکه چې د رطل او اوقیو اندازه د وزن په اعتبار سره شوې ده.تردې که یوڅیز د رطل یا اوقیو په ذریعه خرڅ کړې شي.نودا په وزن باندې شمارلې کیږي.یعنې ددې نه وزن مراد وي.لکه نن صباکه څوک اووائي.چه ما پنځه لیټره شیدې واخستل.نو ددې نه مراد پنځه کلو شیدې وي.

بِخِلَافِ سَائِرِ الْمَكَايِيلِ په خلاف د نورو کیلي څیزونو.

تشریح:- په خلاف د کیلي څیزونو.چه په کیلي څیزونوکې کیل معتبر وي.وزن معتبر نه وي.مثلاً که څوک اووائي.چه مالس قفیزه غنم واخستل.نو ددې نه هغه ظرف او لوښې مراد وي.په کوم چې غنم ناپ کولې شي.وزن مراد نه وي.

وَإِذَا كَانَ مَوْزُونًا اوهرکله چې یو شئ وزني وي فَلَوْبِيعَ بِمِكْيَالٍ بیا دا په پیمانه سره خرڅ کړې شو لَا يُعْرَفُ وَزْنُهُ چې ددې وزن معلوم نه دې بِمِكْيَالٍ مِثْلِهِ ددې دمثل پیمانه په عوض لَا يَجُوزُ نو جائز نه دی.

تشریح:- اوکه موزوني شئ مثلاً سره زر ئې په داسې لوښي ناپ کړل.او خرڅ ئې کړل.چه دهغې وزن معلوم نه وي.هم ددې لوښي د مثل په عوض مثلاً یوکس یوداسې لوښي واخستلو.چه د هغې وزن معلوم نه دې.اودا ئې اووئیل.چه دا لوښي د سرو زرو نه ډک هم ددې په مثل سرو زرو عوض خرڅوم.نود جائز نه دی.

لِتَوَهُّمِ الْفَضْلِ فِي الْوَزْنِ ځکه چې په وزن کې د زیاتوالې شبه ده بِمَنْزِلَةِ الْمُجَازَفَةِ لکه څنګه چې په اندازه سره (د خرڅولو په صورت کې د زیاتوالې شبه) کیږي.

تشریح:- دلیل دا دې چې موزوني شئ که د پیمانه په ذریعه برابر کړې شو.نو په یوعوض کې د زیاتوالې شبه ده.لکه څنګه چې په اندازه سره د برابري کاوه په صورت کې یو اړخ ته د زیاتوالې شبه وي.اوپه اموال ربویه کې چونکه د فضل او زیاتوالې شبه هم دغه ډول ناجائز ده.لکه څنګه چې فضل او زیاتوالې ناجائز دې.په دې وجه موزوني شئ په داسې پیمانه او لوښي سره چې د هغې وزن معلوم نه وي.هم ددې پشان پیمانې په عوض خرڅول جائز نه دی.

**په عقدصرف کښې په عوضین باندې د قبضه حکم**

قَالَ مصنف رحمه الله فرمایي وَعَقْدُ الصَّرْفِ مَا وَقَعَ عَلَى جِنْسِ الْأَثْمَانِ د بیع صرف هغه ده.کوم چې خپل منځ کې د دواړو ثمن په جنس باندې واقع وي يُعْتَبَرُ فِيهِ قَبْضُ عِوَضَيْهِ فِي الْمَجْلِسِ چې په دې کې په مجلس کې دننه ددې په دواړو عوضونو باندې قبضه کول معتبر دی.

تشریح:- په بیع صرف کې دواړه عوضونه د نقودو د قبیلې څنې دی.کله د دواړوجنس یو وي.لکه سره زر د سرو زرو په عوض.او سپین زر د سپینو زرو په عوض.اوکله د دواړو جنس مختلف وي.لکه سره زر د سپینو زرو په عوض.یا سپین زر د سرو زرو په عوض.په رومبي صورت کې یعنې داتحادجنس په وخت په دواړو عوضونوکې برابري هم ضروري ده.اوپه مجلس د عقدکې لاس پلاس قبضه کول هم ضروري دي.اود اختلاف جنس په صورت کې برابري شرط نه ده البته په مجلس د عقدکې یوځائې قبضه کول ضروري دي.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائیلي دي. {وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ هَاءَ وَهَاءَ}(۱) سپین زر د سپینو زرو په

(۱) من حدیث عمر بن الخطاب رضي الله عنه أخرجه البخاري في البیوع باب ٥٤ ومسلم في المساقاة رقم ٧٩ وأبوداود في البیوع باب ١٢ والترمذي في البیوع باب ٢٤ والنسائي في البیوع باب ٤١ وابن ماجه في التجارات باب ٥٠ ومالك في البیوع رقم ٣٨ وأحمد في المسند(٣٤/١)_



عوض نقد په نقد مَعْنَاهُ يَدًا بِيَدٍ، او ددې مطلب لاس په لاس دې وَسَنُبَيِّنُ الْفِقْهَ فِي الصَّرْفِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او ددې عقلي دلیل به په کتاب الصرف کې بیانوو.

حل اللغة: ① هاء وهاء-نغد په نغد ② يعتبر-معتبرولې شي-③ التقابض-قبضه کول ④ يد بيد-لاس په لاس

تشریح:- په مجلس کې یوځائې د قبضه کاوه په وجوب باندې دلیل دادې.د نبي کریم ﷺ ارشاد دې. «الفضة بالفضة هاء وهاء» یعنې سپین زر د سپینو زرو په عوض لاس په لاس یوځائې قبضه کول دی.ابن ابي شیبه د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه دا حدیث داسې روایت کړې دې. «عن رسول الله ﷺ الذهب بالذهب ربا إلا هاء وهاء والورق بالورق ربا إلا هاء وهاء والبر بالبر ربا إلا هاء وهاء والشعير بالشعير ربا إلا هاء وهاء والتمر بالتمر ربا إلا هاء وهاء» یعنې سره زر د سرو زرو په عوض سود دې.خود نقد په نقد په صورت کې یعنې که سره زر د سروزور په عوض برابر برابر خرڅه کړې شوه.اوپه مجلس کې یوځائې قبضه هم اوشوه.نو ټیک ده.ګنې ربوا ده.علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه په عقدصرف کې په مجلس کې یوځائې د قبضه شرط کیدلو عقلي دلیل به ان شاء الله په کتاب الصرف کې بیانیږي.

**په ربوي څیزونوکښې د تعین او تقابض حکم**

قَالَ وَمَا سِوَاهُ مِمَّا فِيهِ الرِّبَا فرمائي.اوکوم شیان چې په اموال ربویه کې د ثمن نه علاوه دی يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّعْيِينُ په هغې کې متعین کول معتبر دی وَلَا يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّقَابُضُ او خپل منځ کې قبضه کول معتبر نه ده.

تشریح:- صورت دمسئلې دادې.چه نقود یعنې د سرو زرو او سپینو زرو نه علاوه په پاتې اموال ربویه یعنې د مکیلي اوموزونات(څیزونو) بیع کې د عوضین متعین کول معتبردی.په مجلس کې قبض کول معتبر نه دی.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِي بَيْعِ الطَّعَامِ په ،،بیع الطعام بالطعام،، کې د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې.

تشریح:- د حضرت امام شافعي رحمه الله په نیزکه د مطعوم بیع د مطعوم په عوض اوکړې شوه.که په اتحاد جنس سره وي.لکه د غنمو بیع د غنمو په عوض.اوکه په اختلاف جنس سره وي.لکه د غنموبیع د اوربشو په عوض.نوپه دې کې متعین کول کافي نه دی.بلکه قبضه کول ضروري دی.نوکه د،،بیع الطعام بالطعام،، په صورت کې د قبضه نه بغیر عاقدین جلا شو.نود امام شافعي رحمه الله په نیز بیع فاسد ده.او زموږ په نیز فاسد نه ده.

لَهُ د امام شافعي رحمه الله دلیل قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي الْحَدِيثِ الْمَعْرُوفِ {يَدًا بِيَدٍ}(۱) مشهور حدیث کې د رسول الله ﷺ قول،،یداً بید،، دی.

تشریح:- د امام شافعي رحمه الله دلیل دادې.چه په حدیث معروف کې د،،یداً بید،،نه مراد قبضه ده.ځکه چې ید یعنې لاس د قبضه کاوه آله ده.نوپه حدیث کې د قبضه آله وئیلې شوې دی.او ذي آله یعنې قبضه مراد ده.ددې نه معلومه شوه.چه د اموال ربویه بیع کې په عقدکې عوضین باندې یوځائې قبضه کول ضروري دی.عوضین که د نقود څنې وي.اوکه د نقود څنې نه وي.

وَلِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يُقْبَضْ فِي الْمَجْلِسِ اوځکه چې کله ده په مجلس کې قبضه اونکړله فَيَتَعَاقَبُ الْقَبْضُ نو قبضه به ددې نه روسته واقع کیږي وَلِلنَّقْدِ مَزِيَّةٌ اود نغد لپاره یو ډول زیاتوالې دې فَتَثْبُتُ شُبْهَةُ الرِّبَا نود سود شبه به متحقق کیږي.

حل اللغة: ① يتعاقب-روسته واقع کیدل-② مزية-زیاتي څیز-③ الثوب-جامه-④ التمكن-قدرت حاصلیدل

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه په کوم عوض باندې په مجلس عقدکې قبضه اونکړې شوه.په دې به روسته قبضه واقع کیږي.اوپه کوم عوض چې په مجلس عقدباندې قبضه اوکړې شوه.هغه نقد شو.او نقد ته په غیرنقد باندې یو ډول فضیلت حاصل وي.نو هرکله چې نقد ته په غیرنقد باندې فضیلت حاصل دې.نو په دې کې د ربوا شبه پیدا

(۱ تقدم تخریجه عن قریب)_

شوه.او په قول د احنافو ﷭ د ربوا شبه هم دغه ډول د بيع د جواز نه مانع دي. لکه څنګه چې حقيقت ربوا د بيع د جواز نه مانع دي.په دي وجه د بيع الطعام بالطعام په صورت کي په مجلس عقدکي په دواړه عوضونو باندي قبضه کول ضروري دي.

وَلَنَا زمونږ دليل دادي أَنَّهُ مَبِيعٌ مُتَعَيِّنٌ چې د جنس ثمن نه علاوه بيع متعين ده فَلَا يُشْتَرَطُ فِيهِ الْقَبْضُ په دي وجه به په دي کي قبضه شرط نه وی كَالثَّوْبِ لکه کپړه وَهَذَا لِأَنَّ الْفَائِدَةَ الْمَطْلُوبَةَ إِنَّمَا هُوَ التَّمَكُّنُ مِنَ التَّصَرُّفِ اوځکه چې د بيع نه مطلوبه فائده په تصرف باندي قابو موندل دي وَيَتَرَتَّبُ ذَلِكَ عَلَى التَّعْيِينِ اودا په متعين کاوه مرتب کيږي.

حل اللغة: ① مزية-زياتی-② التمكن-قدرت حاصليدل ③ التعيين-معين کول ④ يشترط-شرط کولې شی

تشريح:- زمونږ دليل دادي.چه د سرو او سپينو زرو نه علاوه هرمال متعين کيدلې شی.اوکوم شئ چې متعين وی. يعنی په متعين کولوسره متعين کيدلې شی.په هغې کي قبضه شرط نه وی.لکه کپړا،غلام،حيوان (څاروي) وغيره.اوکوم شئ چې په متعين کولوسره متعين کيدلې شی.په هغې کي د قبضه نه شرط کيدل په دي وجه دی.چه د بيع مقصودی فائده داده.چه په تصرف باندي قابوحاصل وی.اوچونکه په متعين کولوسره دا فائده حاصليږی.په دي وجه د قبضه کاوه اړتيا نشته.

بِخِلَافِ الصَّرْفِ په خلاف د بيع صرف لِأَنَّ الْقَبْضَ فِيهِ ځکه چې په دي کي قبضه لِيَتَعَيَّنَ بِهِ ځکه ده.چه په دي سره متعين شی.

تشريح:- په خلاف د بيع صرف.چه په دي کښي په مجلس عقدکي قبضه کول ضروری دی.ځکه چې په بيع صرف کي نقود چونکه دمتعين کاوه باوجود نه متعين کيږی.په دي وجه ددي د متعين کاوه لپاره قبضه شرط اوګرځولی شو.اود نقود نه علاوه نور شيان چونکه په متعين کاوه سره متعين کيږی.په دي وجه ددي په بيع کي د قبضه اعتبار نه دي شوي.

وَمَعْنَى قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ "{يَدًا بِيَدٍ}" "عَيْنًا بِعَيْنٍ" اود نبی کريم ﷺ قول د،،يداً بيد،، معنی،، عيناً بعين،، ده وَكَذَا رَوَاهُ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ ﷛ هم دغه ډول دا عباده بن صامت ﷛ روايت کړي دي.

تشريح:- علامه مرغينانی ﷫ د امام شافعی ﷫ د دليل په ځواب کي فرمائيلی دی.چه د رسول الله ﷺ د قول،،يداً بيد،، نه مراد،،عيناًبعين،، دي.يعنی د اموال ربويه بيع ددي د هم جنس په عوض هغه وخت جائز ده.چه کله عوضين متعين وی.ددي تائيد د امام مسلم ﷫ روايت کړي شوی د عباده بن صامت ﷛ حديث نه هم کيږی.چه ددي حديث الفاظ دادی. «سمعت رسول الله ﷺ ينهى عن الذهب بالذهب والفضة بالفضة والبر بالبر والشعير بالشعير والتمر بالتمر والملح بالملح إلا سواء بسواء عيناً بعين فمن زاد او استزاد فقد أربى» يعنی،، ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی.چه منع ئې اوفرمائيله د سرو زرو بيع د سروزرو په عوض،د سپينوزرو بيع د سپينوزرو په عوض،د غنموبيع د غنمو په عوض،د اوربشو بيع د اوربشو په عوض،د کجورو بيع د کجورو په عوض،د مالګي بيع د مالګي په عوض کولونه مګربرابر سرابر دواړه عوضونه متعين کولوسره.نو که چا زيات ورکړل.يائې زيات واخستل.نوده د سود لين دين اوکړلو،،

وَتَعَاقُبُ الْقَبْضِ لَا يُعْتَبَرُ تَفَاوُتًا فِي الْمَالِ عُرْفًا اود قبضه روسته واقع کيدل عرفاً په مال کي متفاوت نه شمارلي کيږی.

تشريح:- داعبارت د امام شافعی ﷫ د عقلی دليل ځواب دي.حاصل دځواب دادي. که عوضين پوره نه وی.بلکه نغد وی او متعين وی.نود سوداګرو په عرف کي مقبوض فی المجلس اود غيرمقبوض فی المجلس په ماليت کي تفاوت معتبر نه وی.يعنی داسې نه ده.چه په کوم عوض باندي په مجلس کي قبضه اوکړي شوه.ددي ماليت زيات وی.او په کوم چې دمجلس نه روسته قبضه شوې وی.د هغې ماليت کم وی.بلکه په ماليت کي دواړه برابر وی.او هرکله چې داسې ده.نوکوم عوض چې مقبوض فی المجلس دي.دي ته په بل عوض باندي هيڅ فضيلت حاصل نه



دي.نو ددي په مقبوض فی المجلس ته په غيرمقبوض فی المجلس باندي هيڅ فضيلت حاصل نه دي.اوهر کله چې وجه به د رباء شبه هم نه پيدا کيږی.او هر کله چې د رباء شبه پيدا نشوه.نو بيع به ناجائز هم نه وی.بلکه جائز به وی.

بِخِلَافِ النَّقْدِ وَالْمُؤَجَّلِ په خلاف د نغد او مؤجل.

تشريح:- په خلاف د نغد اوقرض.ځکه چې په دي کي زياتوالي حاصليږی.اود سوداګرو په نيز د نغد او پور په ماليت کي تفاوت شمارلې کيږی.په دي وجه د اموال ربويه په بيع کي د يو عوض نغد اود بل پور کيدلو په صورت کي د رباء شبه پيدا کيږی.ددي په وجه به بيع ناجائز وی.

## په هګۍ،کجورو،او غوزانوکښي په کمې زياتي سره د بيع حکم

قَالَ وَيَجُوزُ بَيْعُ الْبَيْضَةِ بِالْبَيْضَتَيْنِ وَالتَّمْرَةِ بِالتَّمْرَتَيْنِ وَالْجَوْزَةِ بِالْجَوْزَتَيْنِ فرمائی.او يوه هګۍ د دوې (دوه) هګو په عوض او يوه کجوره د دوې (دوه) کجورو په عوض،او يو غز د دوې (دوه) غوزانو په عوض خرڅول جائز دی. لِانْعِدَامِ الْمِعْيَارِ ځکه چې قدر معدوم دي فَلَا يَتَحَقَّقُ الرِّبَا ځکه به ربوا نه متحقق کيږی.

حل اللغة: ① البضة-هګی-② التمرة-قجوره-③ الجوزة-غوز-④ يتحقق-ثابتيږی

تشريح:- زمونږ په نيز يوه هګی د دوې (دوه) هګو په عوض خرڅول جائزدی.خو پور جائز نه دي.داحنافو دليل دادي.چه د ربوا علت قدرمع الجنس دي.او په ذکر شوی څيزونوکي قدرمع الجنس موجود نه دي.ځکه چې هګۍ اوغوزان عددی دی.(يعنی په شمارسره خرڅولې شی) او کجورې اګرچه کيلی دی.خود نصف صاع نه دکم په شريعت کي هيڅ پيمانه نشته.ځکه به يو او دوې (دوه) کجورې د کيل نه خارج وی.نو هرکله چې ذکرشوی شيان قدری نه دی.يعنی نه کيلی دی.اونه وزنی دی.نو په دي کي به فضل او زياتوالې جائز وی.خوچونکه اتحاد جنس موجود دي.په دي وجه نساء يعنی د يوعوض پور کيدل به حرام وی.

وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِيهِ او په دي حکم کي امام شافعی ﷫ زمونږ مخالف دي لِوُجُودِ الطُّعْمِ ځکه چې طعم موجود دي عَلَى مَا مَرَّ لکه څنګه چې تيرشو.

تشريح:- د امام شافعی ﷫ په نيز ناجائز دي.د امام شافعی ﷫ دليل دادي.چه ددوی په نيز په مطعومات کي د رباء علت طعم دي.او په ذکرشوی څيزونوکي طعم موجود دي.په دي وجه د عوضين په مينځ کي برابری کول ضروری دی.او په ذکر شوی څيزونوکي چونکه برابری موجود نه ده.ځکه به ربوا متحقق وی.او بيع به ناجائز وی.

## په معين پيسوکښي په کمې زياتي سره د بيع حکم

قَالَ فرمائی وَيَجُوزُ بَيْعُ الْفَلْسِ بِالْفَلْسَيْنِ بِأَعْيَانِهِمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ اود ابوحنيفه اوابويوسف ﷭ په نيز يو معين پيسه د دوې (دوه) معين پيسو په عوض خرڅول جائز دی.

حل اللغة: ① الفلس-پيسه-② الدرهم-روپۍ-③ الاصلاح-اتفاق-④ الولاية-دحکم چلولوقوت

تشريح:- فلس: پيسه،د سپينو او سرو زرو نه علاوه سکې،ددي جمع فلوس او افلس راځي.فلوس چې د فلوس په عوض وی نو ددي يو صورت دا دي چې د يومعين پيسې بيع د دوې (دوه) معين پيسو په عوض اوشی په دي صورت کي د شيخينو ﷭ په نيز جائز ده.اوهم دا يوقول د امام شافعی ﷫ دي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد ﷫ فرمائيلی دی لَا يَجُوزُ[1] چې جائز نه دی لِأَنَّ الثَّمَنِيَّةَ تَثْبُتُ بِاصْطِلَاحِ الْكُلِّ ځکه چې (د فلوس) ثمن کيدل د ټولو خلګو په اتفاق سره ثابت شوی دی فَلَا تَبْطُلُ بِاصْطِلَاحِهِمَا، وَإِذَا بَقِيَتْ په دي وجه د بائع او مشتري په اتفاق سره ثمنيت نه باطليږی أَثْمَانًا لَا تَتَعَيَّنُ اوکله چې فلوس ثمن پاتې شو.نو نه به متعين کيږی.

[1] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله لأن جميع المعاملات فی هذا الزمان علی الثمن العرفی ولا يعرف العوام الثمن الشرعی بل هو من البضاعة فی هذا الزمان ولو جاز بيع الفلس بالفلسين لفتح باب الربوا قاله مفتی غلام قادر كذا فی القول الراجح (۵۹/۲)-

**تشریح:-** ذکرشوې صورت د امام محمد رحمه الله په نیز ناجائز دې. اود امام شافعي رحمه الله هم یو قول دادې. د امام محمد رحمه الله دلیل دادې. چه د فلوس ثمن کیدل، د ټولو خلګو په اتفاق سره ثابت دی. اوکوم شئ چې د ټولو خلګو په اتفاق سره ثابت وي. هغه صرف د بائع اومشتري په باطل کولوسره نه باطلیږي. ځکه چې بائع اومشتري ته د خپل ځان نه په علاوه باندې ولایت حاصل نه وي. نوهر کله چې دمشتري اود بائع په باطلولو سره د فلوس ثمن کیدل نه باطلیږي. نو ددې ثمنیت پاته کیږي. او هرکله چې د فلوس ثمن کیدل پاته دی. نودا به په متعین کاوه سره نه متعین کیږي. او هرکله چې فلوس په متعین کولوسره متعین نشو. نو ددې بیع به داسې وي.

| فَصَارَ نودا داسې شوه كَمَا إِذَا كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا لکه چې دا دواړه غیرمعین وي وَكَبَيْعِ الدِّرْهَمِ بِالدِّرْهَمَيْنِ او لکه یو درهم د دوي (دوه) درهمو په عوض خرڅول. |
|---|

**تشریح:-** لکه چې دواړه عوض غیرمعین وي. او وړاندې تیر شوی دی. چه دواړه عوض یعنی د دواړه اړخ فلوس که غیر معین وي. نو بیع ناجائز وي. نوهم دغه ډول به په دې صورت کې بیع ناجائز وي.

او یوه پیسه د دوي (دوه) پیسو په عوض خرڅول به داسې وي. لکه د یو درهم د دوي (دوه) درهمو په عوض خرڅول. اودا چونکه ناجائز دی. نو په ذکرشوي صورت کې به هم ناجائز وي.

| وَلَهُمَا د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّ الثَّمَنِيَّةَ فِي حَقِّهِمَا ثَبَتَتْ بِاصْطِلَاحِهِمَا چې د فلوس ثمن کیدل، د عاقدینو په حق کې ددې دواړو په اتفاق کاوه سره ثابت شوی دی إِذْ لَا وِلَايَةَ لِلْغَيْرِ عَلَيْهِمَا چې د فلوس ثمن کیدل، د عاقدینو په حق کې ددې دواړو په اتفاق کاوه سره ثابت شوی دی فَتَبْطُلُ بِاصْطِلَاحِهِمَا نو ددې دواړو په اتفاق سره د فلوس ثمن کیدل به باطل وي وَإِذَا بَطَلَتِ الثَّمَنِيَّةُ اوکله چې ثمنیت باطل شو تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ نودا به په متعین کاوه سره متعین کیږي. |
|---|

**تشریح:-** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې. چه د عاقدینو په حق کې د فلوس ثمن کیدل پخپله ددوی په اتفاق کاوه سره ثابت شوی دی. د ټولو خلګو په اتفاق کاوه سره نه دی ثابت شوې. ځکه چې په دوی باندې د بل چا ولایت حاصل نه دې. نوهرکله چې د عاقدینو په انکار کاوه سره دفلوس ثمن کیدل ثابت شوی دی. نوهم ددوی په باطلولو سره به باطلیږي. او هرکله چې د فلوس ثمن کیدل باطل شو. نو فلوس سامان شو. او سامان په متعین کولوسره متعین کیږي. خوچونکه په یوه او دوي (دوه) پیسو کې قدر اومعیار موجود نه دې. یعنی نه کیلي دی. اونه وزني دی. په دې وجه په کمی زیاتی سره خرڅولو کې به ربوا نه متحقق کیږي. او هرکله چې ربوا متحقق نشوه. نودا بیع به جائز وي.

| وَلَا يَعُودُ وَزْنِيًّا لِبَقَاءِ الْإِصْطِلَاحِ عَلَى الْعَدِّ او ځکه چې ددې شمارلو باندې اتفاق پاته دې إِذْ فِي نَقْضِهِ فِي حَقِّ الْعَدِّ فَسَادُ الْعَقْدِ ځکه چې د شمارلو فلوس به وزن کیدلو اړخ ته نه واپس کیږي په حق کې اتفاق ختمولو کې فساد دعقد دې. |
|---|

**تشریح:-** دا عبارت د یوسوال ځواب دې. سوال دادې. چه هرکله د عاقدینو په حق کې د فلوس ثمن کیدل باطل شو. نو ددې وزني کیدل به هم واپس راځي. ځکه چې د ثمنیت باطلولو نه روسته فلوس د پیتلو ټکړې پاتې شوې. او پیتل وزني وي نودا داسې شوه. ګویا ده د پیتلو یوه ټکړه د دوي (دوه) ټکړو په عوض خرڅ کړلې. اودا ناجائز دی. ځکه چې موزوني شئ په اندازه سره خرڅول ناجائز دی. په دې وجه د ثمنیت باطلولو نه روسته هم یومعین پیسه د دوي (دوه) معین پیسو په عوض خرڅول ناجائز کیدل پکار وو. حالانکه شیخین رحمهما الله دې ته جائز واني. ددې ځواب دادې. چه عاقدینو په فلوس کې دوي (دوه) څیزونو باندې اتفاق کړې وو. یود فلوس په ثمن کیدلو باندې. او بل ددې په عددي کیدلو باندې. خوچه کله عاقدینو یو د دوي (دوه) په عوض خرڅولو باندې اقدام اوکړلو. نو دوی د ثمنیت اعتبار کاوه نه اعراض اوکړلو. ځکه چې د ثمن کیدلو په صورت کې یوه پیسه د دوي (دوه) پیسو په عوض خرڅول د ربوا کیدلو په وجه قطعاً ناجائز دی. او په دې کې ئې د عددي کیدلو اعتبار کاوه نه اعراض نه دې کړې او ددې دواړو په حق کې د فلوس ثمن کیدلو نه خارج کیدل ددې د عددي کیدلو نه خارجولو



نه مستلزم نه دی. یعنی د فلوس په ثمن کیدلو سره دا نه لازمیږي. چه دا عددي نه وي.

| فَصَارَ نودا داسې شوه كَالْجَوْزَةِ بِالْجَوْزَتَيْنِ لکه یو غز د دوي (دوه) غوزانو په عوض خرڅول. |
|---|

**تشریح:-** لکه غوزان او هګۍ. چه دا دواړه عددي دی. خو ثمن نه دی. نوهم دغه ډول د فلوس د ثمنیت په بطلان باندې د عاقدینو د اتفاق کاوه نه روسته په فلوس کې ثمنیت خو پاتې نشو. البته ددوی عددي کیدل پاته دی. اوچه د فلوس عددي کیدل پاته شو. نو اتحاد قدرفوت شو. اود قدر یا جنس په فوت کیدلوسره په کمی زیاتی سره بیع جائز وي. په دې وجه به په ذکرشوې مسئله کې د یوې پیسې بیع د دوي (دوه) پیسو په عوض د څه قباحت نه بغیر جائز وي.

علامه مرغیناني رحمه الله هم دا ځواب داسې فرمانیلې دې. چه د فلوس په عددي کیدلو باندې دعاقدینو اتفاق پاته دې. ځکه چې د عددي کیدلو په حق کې په اتفاق ماتولو کې عقد فاسدیږي. حالانکه دې دواړو د صحت عقد اراده کړې ده. او صحت عقد د فلوس عددي کیدل پاته کیدلو نه بغیر ممکن نه دې. په دې وجه به هم دا وئیلې شی چه د فلوس په عددي کیدلو باندې د عاقدینو اتفاق دې. اوهرکله چې په عددي کیدلو باندې اتفاق دې. نو فلوس د غوزانو پشان شو. اود یو غز بیع د دوي (دوه) غوزانو په عوض جائز ده. نوهم دغه ډول د یو پیسې بیع به د دوي (دوه) پیسو په عوض جائز وي.

| بِخِلَافِ النُّقُودِ په خلاف د نقود لِأَنَّهَا لِلثَّمَنِيَّةِ خِلْقَةً ، ځکه چې دا مورزاده (پیدائشي) طورباندې ثمنیت لپاره دی. |
|---|

**حل اللغة:** ① خلقة-مورزاده (پیدائشي)- ② کالی-قرض- ③ الانفراد-ځانله- ④ یحرم-حراموي

**تشریح:-** په خلاف د نقود (یعنی دراهم او دنانیر) چې ددې ثمن کیدل مورزاده (پیدائشي) او خلګ ی دی. په دې وجه د عاقدینو په اتفاق کولوسره به ددې ثمنیت نه باطلیږي. او هرکله چې ثمنیت باطل نشو. نو په کمی زیاتی سره به بیع هم ناجائز وي.

| وَبِخِلَافِ او په خلاف ددې مَا إِذَا كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا لکه چې فلوس غیرمتعین وي لِأَنَّهُ كَالِئٌ بِالْكَالِئِ ځکه چې داد دین بیع د دین په عوض ده وَقَدْ نُهِيَ عَنْهُ حالانکه ددې نه منع شوې ده. |
|---|

**تشریح:-** امام محمد رحمه الله ته علامه مرغیناني رحمه الله په ځواب کې فرمائي. که دواړه عوض غیرمعین وي. نو بیع ځکه ناجائز ده. چه په دې صورت کې پور په پور یعنی د دین بیع د دین په عوض. یعنی د ،،ماوجب فی الذمه،، بیع د ،،ماوجب في الذمه،، په عوض یعنی د پور بیع د پور په عوض لازمیږي. حالانکه رسول الله ﷺ د پور په پور یعنی د دین بدین بیع نه منع فرمائیلې ده.

| وَبِخِلَافِ او په خلاف ددې مَا إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا بِغَيْرِ عَيْنِهِ کله چې په دواړو کې یوغیر متعین وي لِأَنَّ الْجِنْسَ بِانْفِرَادِهِ يُحَرِّمُ النَّسَاءَ ځکه چې یواځې جنس پور حراموي. |
|---|

**تشریح:-** اوکه په دواړه عوضونو کې یو عوض غیرمعین اویو معین وي. نوځکه ناجائز ده. چه په فلوس کې اتحادقدر اګرچه معدوم دې. خو اتحادجنس موجود دې. او ځانله د جنس موجودکیدل نساء یعنی پور حرام کوي. ځکه به دا بیع هم حرام وي. ځکه چې کوم عوض غیرمعین وي. هغه پور شمارلې کیږي. اوکوم چې معین وي هغه نغد شمارلې کیږي.

### د غنمو په اوړو اوستوانو سره د بیع حکم

| قَالَ فرمایي وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْحِنْطَةِ بِالدَّقِيقِ او غنم د اوړو په عوض خرڅول جائز نه دی وَلَا بِالسَّوِيقِ ونه د ستوانو په عوض لِأَنَّ الْمُجَانَسَةَ بَاقِيَةٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې مجانست من وجه پاته دې. |
|---|

**حل اللغة:** ① الحنطة-غنم- ② الدقيق-اوړه- ③ السويق-ستوان- ④ باقية-پاته دې

**تشریح:-** مسئله داده. چه زموږ په نیز د غنمو بیع ددې د اوړو په عوض اود غنمو بیع ددې د ستوانو په عوض جائز نه

ده.نه په برابرئ سره اونه په کمی زیاتی سره.هم دا یوقول د امام شافعي، امام احمد اود امام ثوري رحمهم الله دي.

اود امام مالك رحمه الله مذهب دادي.چه د غنمو بیع ددې د اوړو اود ستوانو په عوض برابر جائز ده.هم دا د امام احمد اظهرقول دي.

د امام مالك رحمه الله دلیل دادي.چه دغنمو اوړه او ستوان بیعنه غنم دی.صرف دومره توپیر دي.چه غنمو د متفرق اجزاء.نوم اوړه او ستوان دی.اود اجزائي مجتمعه نوم حنطه او غنم دی.نو اوړه او ستوان د غنمو د وړو وړو دانو مشابه شو.او نفس غنم د غټوغټو دانو مشابه شو.اود غنمو غټې غټې دانې د وړو وړو دانو په عوض دکیل او پیمانه په ذریعه برابر خرڅول چونکه جائز دی.په دې وجه غنم د اوړو او ستوانو په عوض برابر خرڅول هم جائز وی.

**لِأَنَّهُمَا مِنْ أَجْزَاءِ الْحِنْطَةِ** ځکه چې اوړه او ستوان دواړه د غنمو د اجزاء څخې دی **وَالْمِعْيَارُ فِيهِمَا الْكَيْلُ** او په دې دواړو کې معیار کیل دي.

**تشریح:**- دعدم جواز دلیل دا دي چې دغنمو او ددې د اوړو په مینځ کې ،اود غنمو اود ستوانو په مینځ کې من وجه هم جنس کیدل موجود دی.او من وجه موجود نه دی.مجانست ځکه موجود دي.چه د غنمو په میده کاوه سره صرف د غنمو اجزاء متفرق کیږي.او شئ د اجزاؤ د تفریق په وجه دوهم شئ نه جوړیږي.بلکه هم هغه شئ پاته وی.نود میده کاوه نه وراندې چې کوم شئ وو.د میده کاوه نه روسته هم هغه شئ پاته دي.

او مجانست من وجه ځکه نه دي موجود.چه د جنس اختلاف د نوم، صورت،اود معنی په اختلاف سره متحقق کیږي.لکه د غنمو او اوربشو په مینځ کې اختلاف جنس دي.ځکه چې د دواړو نوم هم مختلف دي.صورت هم مختلف دي.او معانی اومنافع هم مختلف دی.نو په دې صورت کې د میده کولونه وراندې ددې نوم غنم وو.اود میده کاوه نه روسته اوړه یا ستوان شو.نوګویا ددواړو نوم مختلف دي.ځکه چې غنم اورتولې شی.او خوړلې شی.اود اوړو په مینځ کې من وجه مجانست زائل شو.اومن وجه نه دي زائل شوي.بلکه پاته دي.نوګویا د مجانست په زائل کیدلوکې شك واقع شو.حالاتکه د مجانست موجود کیدل یقیني وو.او یقین د شك په وجه نه زائل کیږي.په دې وجه اووئیلی شو.چه مجانست زائل شو.اومن وجه زائل نشو.بلکه پاته دي.نوګویا دمجانست په زائل کیدلو کې شك واقع شو.حالاتکه دمجانست موجود کیدل یقیني وو.اویقین د شك په وجه نه زائل کیږي.په دې وجه اووئیلو شو.چه مجانست نه دي زائل شوي.بلکه پاته دي.نود غنمو اوددې د اوړو په مینځ کې اود غنمو اود ستوانو په مینځ کې اتحادجنسي او اتحاد قدر دواړه موجود شو.اوهرکله چې قدر مع الجنس دواړه موجود شو.نو تفاضل اوشبهٔ تفاضل دواړه به حرام وی.او په برابرئ سره به بیع جائز وی.

**لٰكِنَّ الْكَيْلَ غَيْرُ مُسَوٍّ بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ الْحِنْطَةِ** خو کیل ددې دواړو او غنمو په منځ کې برابری نشی کولې **لِاكْتِنَازِهِمَا فِيهِ** ځکه چې اوړه او ستوان په پیمانه کې اوېره ډکیږي **وَتَخَلْخُلِ حَبَّاتِ الْحِنْطَةِ** اود غنمو د دانو په منځ کې خلا پاتې کیږي **فَلَا يَجُوزُ** په دې وجه جائز نه ده **وَإِنْ كَانَ كَيْلًا بِكَيْلٍ** اګرچه بیع کیلاً بکیل وی.

**حل اللغة:** ① مسو-برابری-② حبات-جمع د حبة،دانه-③ الحنطة-غنم-④ الدقیق-اوړه

**تشریح:**- خودغنمو او اوړه او ستوانو ناپ کاوه پیمانه کیل وی.اود کیل په ذریعه غنم او ددې د اوړو او ستوانو په مینځ کې برابری پیدا کول ناممکن دی.ځکه چې په پیمانه کې اوړه په ټومبلو ټومبلو سره ډکولې شی.خود غنمو په مینځ کېښې چونکه خلا پاته کیږي په دې وجه دا په ټومبلو سره نشی ډکولې.نوهرکله چې د غنمو یوکیل د اوړو د یوکیل په عوض خرڅ کړې شی.نو ددې دواړو په مینځ کې د کمی زیاتی شبه پاته کیږي. یعنی اوړه به زیاتې وی.او غنم به کم وی.او په اموال ربویه یعنی د قدرمع الجنس موجودکیدلو په صورت کې لکه څنګه چې حقیقتاً ربوا یعنی کمې زیاتې حرام دي.دغه ډول د ربوا شبه هم حرام ده.په دې وجه د غنمو بیع د اوړو او ستوانو په عوض ناجائز ګرځولې شوې ده.اګرچه د کیل په ذریعه دواړه عوضونه برابر کړې شوي وی.





## اوړه د اوړو په بدل کښې په برابرئ سره د بیع حکم

**وَيَجُوزُ بَيْعُ الدَّقِيقِ بِالدَّقِيقِ مُتَسَاوِيًا كَيْلًا** او اوړه د اوړو په عوض پیمانه سره برابر خرڅول جائز دی **لِتَحَقُّقِ الشَّرْطِ** ځکه چې شرط موجود دي.

**تشریح:**- مسئله داده.چه زموږ په نیز د پیمانې اوکیل په ذریعه برابرولو سره د اوړو بیع د اوړو په عوض جائز ده.

دلیل دادي.چه دغنمو د دواړو اوړو په مینځ کې من وجه مجانست هم موجود دي.اود دواړو په مینځ کې اتحاد قدر هم شته.او د دواړو جنس یوکیدل خو ښکاره دی.او اتحاد قدر ځکه دي.چه اوړه کیلي دی.ځکه چې خلګ د اوړو اخستل خرڅول دکیل په ذریعه کوی.په دې وجه د اوړو بیع سلم د کیل په ذریعه کیږي.اود کیل په ذریعه اوړه په قرضو اخستل هم جائز دی.ددې نه معلومه شوه.چه اوړه کیلي دی.نوهرکله چې اتحاد جنس هم دي.او اتحادقدر هم شته.نو په دواړو عوضونوکې د کیل په ذریعه د برابری کاوه په صورت کې به بیع جائز وی.او دلته کې هم دا مسئله فرض کړې شوې ده.حاصل داچه علت ربوا موندلو په صورت کې د بیع د جواز شرط مساوات او برابری ده.او دلته کې دا شرط موجود دي.په دې وجه د کیل په ذریعه برابرولو سره د اوړو بیع د اوړو په عوض جائز ده.

د شیخ امام ابی بکر محمدبن فضل رحمه الله نه نقل دی.که اوړه د اوړو په عوض خرڅ کړې شو.اود کیل په ذریعه برابری اوکړې شوه.نودا بیع به هغه وخت جائز وی.چه کله دواړه کیلونه په ښه ټومبلوټومبلو سره ډك کړې شوی وی.ځکه چې په دې صورت کې د کمی زیاتی شبه نه واقع کیږي.

**وَبَيْعُ الدَّقِيقِ بِالسَّوِيقِ** او اوړه د ستوانو په عوض خرڅول **لَا يَجُوزُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ مُتَفَاضِلًا** د ابوحنیفه رحمه الله په نیز نه متفاضلاً جائز دی **وَلَا مُتَسَاوِيًا** [1] اونه متساویاً.

**تشریح:**- د غنمو د اوړو بیع دغنمو د ستوانو په عوض دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نه په برابرئ سره جائز ده.اونه په کمی زیاتی سره جائز ده.

**لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ بَيْعُ الدَّقِيقِ بِالْمَقْلِيَّةِ** ځکه چې اوړه د اورتو غنمو په عوض خرڅول جائز نه دی **وَلَا بَيْعُ السَّوِيقِ بِالْحِنْطَةِ** اونه ستوان د غنمو په عوض (خرڅول جائز دی)، **فَكَذَا بَيْعُ أَجْزَائِهِمَا** نوهم دغه ډول ددې د اجزاؤ بیع (جائز نه ده) **لِقِيَامِ الْمُجَانَسَةِ مِنْ وَجْهٍ** ځکه چې من وجه مجانست موجود دي.

**حل اللغة:** ① المقلیة-وراته غنم-② اجزاء-جمع د جزء ،حصه-③ معظم-لوئې-④ التغذی-غذا حاصلول

**تشریح:**- حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د بیع الدقیق بالسویق په عدم جواز باندې دلیل دا دې چې د اوړو بیع د اورتو غنمو په عوض اود ستوانو بیع د بغیر اورتوغنمو په عوض ناجائز ده. او دا عدم جواز په دې وجه دې.چه دا ربوا الفضل ته مستلزم دي.او ربوا الفضل مجانست سره ثابتیږي.نو په ستوانو اود بغیر اورتو غنمو په مینځ کې مجانست ثابت شو. اوچونکه اوړه د بغیر اورتو غنمو اجزاء دی.په دې وجه به د اوړو او ستوانو په مینځ کې مجانست ثابت شی. او په اوړو او ستوانو په مینځ کې د کیل په ذریعه مساوات او برابری کول ناممکن دی.په دې وجه د اوړو بیع د ستوانو په عوض متفاضلاً هم ناجائز ده.اومتساویاً هم ناجائز ده.

**وَعِنْدَهُمَا يَجُوزُ** اود صاحبینو رحمهما الله په نیز جائز دي **لِأَنَّهُمَا جِنْسَانِ مُخْتَلِفَانِ لِاخْتِلَافِ الْمَقْصُودِ** ځکه چې اوړه او ستوان د مقصود د اختلاف په وجه دوي (دوه) مختلف جنسونه دی

**تشریح:**- په مذکوره مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله په نیز متساویاً او متفاضلاً په دواړه طریقه بیع جائز ده.

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله کذا فی فتح القدیر(۱۶۵\۶) وردالمحتار(۲۰۸\۳) والزیلعی (۹۶\۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۶۰\۲)-

د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې چه د غنمو اوړه ددې ستوان دوې (دوه) جلا جلا جنسونه دی. اګرچه د دواړو اصل یعنی غنم یودی. او ددې دواړو جنس مختلف ځکه دې چه د دواړو په مقصود کې اختلاف دې. ځکه چې د اوړو نه ډوډۍ پخیږي، پراټې پخیږي. اودا دواړه خبرې په ستوانو سره نه حاصلیږي. او ستوان په اوبو کې ګډولې شي. نو خوړلې شي. او په غوړو اوچینو کې ګډوډ کولې شي. اوخوړلې شي. اودا مقصد په اوړو سره نه حاصلیږي. حاصل دا شو. چه اوړه او ستوان دوې (دوه) جلا جلا جنسونه دی. اوهر کله چې جلا جلا جنسونه شو. نو په دې کې یو د بل په عوض برابر هم جائز دی. اوپه کمی زیاتی سره خرڅول به هم جائز وی. ځکه چې د اختلاف جنس په صورت کې کمی زیاتی سره خرڅول جائز وی.

**قُلْنَا:** موږ خواب ورکوو مُعْظَمُ الْمَقْصُودِ وَهُوَ التَّغَذِّي يَشْمَلُهُمَا چې د ټولو نه غټ مقصود یعنی غذا حاصلول دواړو ته ګډ دی فَلَا يُبَالِي بِفَوَاتِ الْبَعْضِ اود بعض مقصود فوت کیدلو لحاظ نشی کولې.

**تشریح:-** د صاحبینو رحمهما الله د دلیل خواب دادې چه اوړه او ستوان په اعظم مقصود کیدلو یعنی په غذا کیدلو کې دواړه شریك دی. یعنی په اوړو سره هم غذا حاصلیږي. او په ستوانو سره هم غذا حاصلیږي. او پاتې شو په بعض خیزونو کې تفاوت، نودا د اتحاد جنس لپاره مضرنه دې.

كَالْمَقْلِيَّةِ مَعَ غَيْرِ الْمَقْلِيَّةِ لکه د اورتو (غنمو) بیع د بغیر اورتو سره وَالْعِلْكَةِ بِالْمُسَوَّسَةِ اود تازه بیع د سپږو وهلی غنمو سره.

**حل اللغة:** ① العلكة-تازه غنم-② المسوسة-سپږو وهلې غنم-③ زیادة-زیاتوالې-④ المقلية-وراته غنم

**تشریح:-** لکه اوراته شوی غنم او بغیر اوراته شوی غنمو کې څه ناڅه تفاوت نه روسته اتحاد جنس دې. او په چینجو (یا وینو) لګیدلی غنمو کې د څه ناڅه تفاوت باوجود اتحاد جنس دې. دغه ډول د ستوانو او اوړو په مینځ کې هم د څه قدرې تفاوت باوجود اتحاد جنس دې. او هر کله چې اتحاد جنس دې. نو لکه څنګه چې د اورتوغنمو بیع د بغیر اورتوغنمو په عوض، اود ښه ډول غنمو بیع د سپکو (یا وینو) لګیدلی غنمو په عوض متفاضلاً او متساویاً دواړه شان ناجائز دې. دغه ډول د اوړو بیع د ستوانو په عوض متفاضلاً او متساویاً په دواړه طریقه ناجائز ده.

## د غوښې د حیوان په بدله کښې د بیع حکم

قَالَ فرمایي وَيَجُوزُ بَيْعُ اللَّحْمِ بِالْحَيَوَانِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ[1] اود ابوحنیفه رحمه الله په نیزغوښه د ژوندي څناور په عوض خرڅول جائز دی.

**حل اللغة:** ① اللحم-غوښه-② الحیوان-څاروې-③ المفرز-جدا شوې-④ السقطر-د غوښې نه علاوه نور اجزاء

**تشریح:-** غوښه د څارو په عوض د خرڅولو یوڅو صورتو نه دی. یوصورت په متن کې ذکر دې هغه دا چې غوښه ددې هم جنس ژوندی څاروی په عوض خرڅه کړې شی. مثلاً د وزه غوښه د ژوندې وزه په عوض خرڅه کړې شی. نود شیخینو رحمهما الله په نیز دا صورت جائز دې. غوښه که د هغه غوښې برابره وی. کومه چې په ژوندی څاروی کې ده. اوکه برابره نه وی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی إِذَا بَاعَهُ بِلَحْمٍ مِنْ جِنْسِهِ چې کله حیوان (څاروې) ددې د جنس د غوښې په عوض خرڅ کړی لَا يَجُوزُ نو جائز نه دی إِلَّا إِذَا كَانَ اللَّحْمُ الْمُفْرَزُ أَكْثَرَ خو کله چې جداشوې غوښه (د هغه نه) زیاته وی. کومه چې په حیوان کې ده. (نوجائز دی).

[1]) القول الراجح هوهذا قول الشیخین رحمهما الله کذا فی الدرالمختار (٢٠٥١٤) والبحر (١٣٢١٦) وفتح القدیر (١٦٧١٦) نقلاً عن القول الراجح (٦١١٢)-



**تشریح:-** امام محمد رحمه الله فرمائی. که د وزه جداکړې شوې غوښه د هغه غوښه نه زیاته وی. کومه چې په ژوندې وزه کې ده. نو بیا خو جائز ده. ګنی جائز نه ده.

لِيَكُونَ اللَّحْمُ بِمُقَابَلَةِ مَا فِيهِ مِنَ اللَّحْمِ دې لپاره چې د غوښې (یوه حصه) د هغه غوښې په مقابل کې شی. کومه چې په حیوان کې ده وَالْبَاقِي بِمُقَابَلَةِ السَّقْطِ او پاته د حیوان د اجزاء په مقابله کې شی إِذْ لَوْ لَمْ يَكُنْ كَذَلِكَ ځکه که داسې اونشوه يَتَحَقَّقُ الرِّبَا نو ربا ء به متحقق شی. مِنْ حَيْثُ زِيَادَةُ السَّقْطِ د حیوان د اجزاؤ د زیاتوالی په اعتبارسره أَوْ مِنْ حَيْثُ زِيَادَةُ اللَّحْمِ اود غوښې د زیاتوالی په اعتبارسره.

**تشریح:-** د امام محمد رحمه الله دلیل دادې. که جلا کړې شوې غوښه د ژوندې وزه د غوښې نه زیاته وی. مثلاً د وزه جلا کړې شوې غوښه پنځوس کلو ده. او ژوندئ وزه ذبح کاوه نه روسته په دې کې څلویښت کلو غوښه اووتله. نودا صورت ځکه جائز دې. چه د ژوندې وزه څلویښت کلو غوښه به دجدا کړې شوې څلویښت کلو غوښې په عوض شی. او پاته لس کلو غوښه به، د وزه د څرمنې، او نور اجزاء مثلاً سر، پښې وغیره په مقابله کې شی. او په دې صورت کې به ربوا یا شبه ربوا نه پیدا کیږي. خوکه جلا کړې شوې غوښه د ژوندې وزه د غوښې نه زیاته نه وی. بلکه برابر وی. یا ددې نه کم وی. نو ربوا به متحقق شی. ځکه که جلا کړې شوې غوښه په نسبت د هغه غوښې کومه چې په ژوندې وزه کې ده. برابر وی. نودا غوښه اود ژوندې وزه غوښه به برابره وی. اود وزه پاته اجزاء مثلاً څرمن، سر پښې وغیره به زیاتی پاتې شی. اوپه دې دواړو صورتونو کې ربوا ده. په دې وجه غوښه په نسبت د هغه غوښې کومه چې په ژوندې وزه کې ده. که زیاتی وی. بیا خو جائز ده. ګنی جائز نه ده.

فَصَارَ نوداسې شوه كَالْخَلِّ بِالسِّمْسِمِ لکه چې د کونځلو په عوض کې تیل دی.

**حل اللغة:** ① الخل-سرکه-② سمسم-کونځله-③ الثقل-درونډوالې-④ يخفف-سپکوی

**تشریح:-** اودا داسې شوه. لکه د کونځلو په مقابله کې چې ددې تیل وی. یعنی که تیل زیات وی. په نسبت د هغه تیلو کوم چې په کونځلو کې دی. نوجائز دی. ځکه چې د تیلو په مقابله کې به تیل شی. اوکوم تیل چې زیاتی پاتې شی هغه به نې د بورې (کهل) په مقابله کې شی. ګنی که تیل په نسبت د هغه تیلو کوم چې په کونځلو کې دی برابر وی. یا کم وی. نوبیع به جائز نه وی.

وَلَهُمَا اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّهُ بَاعَ الْمَوْزُونَ بِمَا لَيْسَ بِمَوْزُونٍ، لِأَنَّ الْحَيَوَانَ چې ده موزونی شئ د داسې شئ په عوض خرڅ کړې دې کوم چې موزونی نه دې لَا يُوزَنُ عَادَةً ځکه چې حیوان (څاروې) عام طورباندې نه وزن کیږي

**تشریح:-** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې. چه غوښه موزونی ده. ددې اخستل خرڅول د وزن په ذریعه کیږي. او حیوان (څاروې) غیرموزونی دې. عام طورباندې ددې وزن نه کیږي.

وَلَا يُمْكِنُ مَعْرِفَةُ ثِقَلِهِ بِالْوَزْنِ اود وزن په ذریعه ددې بوج پیژندل هم ممکن نه دی لِأَنَّهُ يُخَفِّفُ نَفْسَهُ مَرَّةً بِصَلَابَتِهِ وَيَثْقُلُ أُخْرَى ځکه چې دا کله خپل ځان سپکوی. اوکله درنه وی.

**تشریح:-** اود وزن په ذریعه د ژوندی څاروی بوجه معلومول هم ممکن نه دی. ځکه چې دې هم کله خپل ځان درنه وی. او کله سپکه وی. نودا به معلومه نشی. چه وزه خپل بوج سپك کړې دې. اوکه درند کړې دې. بهرحال غوښه د وزه په عوض خرڅول یو موزونی شئ په عوض خرڅول دی. نود غوښې او وزه په مینځ کې اتحاد قدر اونه موندې شو. او وړاندې تیرشوی دی. چه د اتحاد قدر نه کیدلو په صورت کې بیع متساویاً او متفاضلاً دواړه شان جائز ده. اوکه تاسو غوراوکړئ. نو معلومه بشی. چه غوښه او ژوندئ وزه کې اتحاد جنس هم نشته. ځکه چې غوښه غیرحساس ده. او ژوندئ وزه حساس، متحرك بالاراده ده. اود اتحادجنس فوت کیدلو په صورت کې هم بیع متفاضلاً جائز وی. په دې وجه د غوښې بیع ددې هم جنس ژوندی څاروی په عوض جائز ده. غوښه که د ژوندی څاروی د غوښې نه زیاته وی. اوکه برابره وی. اوکه کمه وی.

بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ په خلاف ددې مسئلې. لِأَنَّ الْوَزْنَ فِي الْحَالِ يُعَرِّفُ قَدْرَ الدُّهْنِ ځکه چې په وزن کاوه سره فی الحال د

تیلو مقدار پیژندلي کیږي إِذَا مَيَّزَتِهِ وَتَفَنَّ الْجَبِرِ، کله چې تیل او کهل (بوره) جلا جلا کړي شی وَيُوزَنُ الْجِيرُ او کهل وزن کړي شی.

حل اللغة: ① الدهن-تیل-② يعرف-پیژندلي شی-③ الثجير-کهل(بوره) ④-قدر-اندازه

تشریح:- په خلاف د کونځلو او ددې د تیلو. ځکه چې في الحال د کونځلو په وزن کاوه سره د تیلو مقدار معلومیدلي شي.چه کله تیل او بوره (کهل) جلا جلا کړي شي.ځکه چې بوره (کهل) یو داسې شئ دې.چه وزن کیدلې شي.مثلاً کونځلي یو کلو دی.خو چې کله ددې نه تیل اوبنکلي شو.او بوره (کهل) اوتللي شوه.نو بوره (کهل) شپږ سوه گرامه وه.نو معلومه شوه.چه تیل څلورسوه گرامه دی.په دې وجه په دې صورت کې تیل په نسبت د هغه تیلو نه زيات پکار دی.کوم چې په کونځلوکي دی.چه تیل د تیلو په مقابله کي شی.او زیاتی تیل د بورې (کهل) په مقابله کي شی.

## د لوندو کجورو د چوارو په بدله کښې د بیع حکم

📖 قَالَ وَيَجُوْزُ بَيْعُ الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ مِثْلًا بِمِثْلٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ اود ابوحنیفه ﷫ په نیز پخې تازه کجورې د پخو اوچو چوارو په عوض برابر سرابر خرڅول جائز دی.

حل اللغة: ① الرطب-تازه قجوره-② التمر-چواره-③ جف-اوچه شوه-④ ينقص-کميږي

تشریح:- رطب: پخو تازه چوارو ته واني.چه په اردو ژبه کي دې ته کجورې واني.او،،تمر،، پخو اوچو چوارو ته واني.چه کله چواره اووئيلي شي.نوهم دا مفهوم ترې مراد وی.

ﷺ مسئله داده.چه د کجورو بیع د چوارو په عوض متفاضلاً یعنی په کمی زیاتی سره بالاجماع ناجائز ده.او متساوياً یعنی برابر برابر د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز جائز ده. حضرت امام مالك،امام شافعي اوامام احمد ﷭ هم ددې د جواز قائل دی.

وَقَالَا: او صاحبين ﷭ فرمايي لَا يَجُوْزُ[1] چې جائز نه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ حِيْنَ سُئِلَ عَنْهُ ځکه چې کله د تازه کجورو په اړه کي د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوشو أَوَيَنْقُصُ إِذَا جَفَّ؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائيل.چه آیا تازه کجورې اوچیدلو سره کمیږي فَقِيْلَ نَعَمْ، نو عرض کړې شو.چه آو فَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: لَا إِذًا[2] نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.جائز نه ده.

تشریح:- اود صاحبینو ﷭ په نیز متساوياً یعنی د کجورو په چوارو باندې برابر برابر خرڅول ناجائز ده. دلیل دادې.چه یوځلې د رسول الله ﷺ نه د،، بیع الرطب بالتمرمثلاً بمثل،، په اړه کې پوښتنه اوشو.چه دا جائز دی،اوکه ناجائز دی.نو نبی کریم ﷺ پوښتنه اوکړه .چه آیا تازه کهجورې اوچې شی.نو کمیږي. خلګو په ځواب کې عرض کړل.چه آو کمیږي.په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائيل.که دا خبره وی.نو بیا د تازه کجورو بیع د چوارو په عوض برابر برابر ناجائز ده.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه بیع الرطب بالرطب برابر برابر هم ناجائز ده.

[1] القول الراجح هو هذا قول الصاحبين ﷭ كذا في فتح القدير(١٦٨\٦) وردالمحتار(٢٠٦\٤) وطلوع النيرين (٣٣٥\١) نقلاً عن القول الراجح (٦٢\٢)۔

(٢) من حديث سعد بن أبي وقاص ﷺ أخرجه مالك ﷫ في الموطا في البيوع باب ما يكره من بيع التمر رقم ٢٢ وأبوداود في البيوع باب ١٨ والنسائي في البيوع باب ٣٦ والترمذي في البيوع باب ماجاء في النهي عن المحاقلة والمزابنة والنسائي في البيوع بباب ٣٦ رقم ٤٢٣٦ وابن ماجه في التجارات باب ٥٣ رقم ٢٢٦٤)۔



📖 وَلَهُ اود امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې أَنَّ الرُّطَبَ تَمْرٌ چې تازه کجورې هم چوارې دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ حِيْنَ أُهْدِيَ إِلَيْهِ رُطَبٌ ځکه کله چې رسول الله ﷺ ته د خیبر نه تازه کجورې په هدیه کي راولیګلي شوې أَوَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا؟[1] نو نبی کریم ﷺ اوفرمائيل.چه آیا د خیبر ټولې چوارې داسې دی سَمَّاهُ تَمْرًا رسول الله ﷺ تازه کجورو ته چوارې اوفرمائيل وَبَيْعُ التَّمْرِ بِمِثْلِهِ جَائِزٌ لِمَا رَوَيْنَا او چوارې د چوارو په عوض برابر برابر خرڅول د ذکرشوی حدیث په وجه جائز دی.

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ نقلی دلیل دادې.چه یوځلې د مدنی آقا ﷺ په خدمت کې د خیبر رطب یعنی تازه کجورې په هدیه کې پیش شوې.نبی کریم ﷺ چې دا اولیدلې.نو وې فرمائيل. ﴿أو كل تمر خيبر هكذا﴾ آیاد خیبر ټولې چوارې داسې وی.اوګورئ نبی کریم ﷺ رطب ته تمر فرمائيلی دی.ددې نه معلومه شوه.چه رطب، تمر دی.اود تمر بیع د تمر په عوض برابر برابر جائز ده.لکه چې حدیث ﴿التمر بالتمر مثلاً بمثل والفضل ربا﴾ یعنی د تمر بیع د تمر په عوض برابر سرابر جائز ده.په دې شاهد دې.نو ثابته شوه.چه د رطب بیع د تمر په عوض برابر برابر جائز ده.

وَلِأَنَّهُ لَوْ كَانَ تَمْرًا اوځکه که تازه کجورې چوارې دی جَازَ الْبَيْعُ بِأَوَّلِ الْحَدِيْثِ بیا خو د رومبی حدیث په وجه بیع جائز ده وَإِنْ كَانَ غَيْرَ تَمْرٍ فَبِآخِرِهِ،اوکه چوارې نه دی.نود روستنی حدیث په وجه جائز ده وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او هغه دادې.چه نبی کریم ﷺ اوفرمائيل إِذَا اخْتَلَفَ النَّوْعَانِ کله چې دوې (دوه) نوع مختلف وی فَبِيْعُوْا كَيْفَ شِئْتُمْ نو ځنګه چې غواړئ خرڅوئ.

تشریح:- عقلی دلیل دادې.چه د رطب دوې (دوه) صورتونه دی.یا خو رطب، تمردی.او یا غیر تمر دی که رطب، تمر دی.نود رطب بیع د تمر په عوض برابر جائز ده.لکه ځنګه چې حدیث د ربوا په پیل کي تیر شوې دی.چه ﴿التمر بالتمر مثلاً بمثل﴾ اوکه رطب غیر تمر دی.نود رطب بیع د تمر په عوض متساوياً او متفاضلاً دواړه قسمه جائز دی.ځکه چې هم ددې حدیث په آخرکي دی. ﴿إذا اختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم﴾ یعنی د اختلاف جنس په صورت کي چې ځنګه غواړئ. خرڅوئ.که متساوياً وی.اوکه متفاضلاً وی.

وَمَدَارُ مَا رَوَيَاهُ عَلَى زَيْدِ بْنِ عَيَّاشٍ اوکوم حدیث چې صاحبینو ﷭ روایت کړې دې.د هغې مدار زیدبن عیاش ﷺ باندې دې وَهُوَ ضَعِيْفٌ عِنْدَ النَّقَلَةِ او دې د حدیث د ناقلینو په نیز ضعیف راوی دې.

تشریح:- د صاحبینو ﷭ د پیش شوی حدیث ځواب دادې.چه ددې حدیث مدار په زیدبن عیاش باندې دې او زیدبن عیاش د حدیث د امامانو په نیز ضعیف اومجهول راوی دې.په دې وجه دا روایت د مشهور حدیث په مقابله کي قابل استدلال نه جوړیږي.

## د انګورو د اوسکو په بدله کښې د بیع حکم

قَالَ فرمايي وَكَذَا الْعِنَبُ بِالزَّبِيْبِ يَعْنِيْ عَلَى الْخِلَافِ اوهم دغه ډول تازه انګور د اوچو انګورو په عوض،یعنی هم په دې اختلاف (مبنی) دې وَالْوَجْهُ مَا بَيَّنَّاهُ او ددې وجه هم هغه ده.کومه چې بیان شوې ده.

حل اللغة: ① العنب-انګور-② الزبيب-اوسکه-③ الاعتبار-قیاس-④ المقلية-وراته غنم

(١) من حديث أبي هريرة ﷺ وأبي سعيدالخدري ﷺ قال الزيلعي ﷫ والمصنف (أي صاحب الهداية ﷫) إحتج بالحديث على جواز بيع الرطب بالتمر،مثلا بمثل،بناء على تسميته في الحديث تمراً وقد كشفت طرق الحديث وألفاظه فلم أجد فيه ذكرالرطب والبخاري ذكرالحديث في أربعة مواضع من صحيحه في البيوع رقم ٢٢٠١ وفي الوكالة رقم ٢٣٠٢ وفي المغازي رقم ٤٢٤٤ وفي الإعتصام رقم ٧٣٥٠ ) وبهذا اللفظ رواه النسائي أيضاً ،نصب الراية ٨٢/٤)۔

**تشريح:-** مسئله داده،چه دحضرت امام ابوحنيفه په نيز پاخه تازه انګور د اوچو انګورو ( اوسكو ) په عوض د پيمانه په ذريعه برابر خرڅول جائز دی.اود صاحبينو اود آئمه ثلاثه په نيز نه متساوياً جائز ده.اونه متفاضلاً جائز ده.د دواړو فريقو دليلونه وړاندي تيرشوی دی.

د امام صاحب دليل دادي،چه عنب او زبيب ( انګور او اوسكي ) د دواړو جنس كه يو وی.نو په دي كي د يو بيع د بل په عوض د كيل په ذريعه برابرجائز ده.اوكه د دواړو جنس جلا جلا وی.نوحديث «إذا اختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم» په وجه ددي بيع متساوياً اومتفاضلاً په دواړه طريقه جائز ده.

د صاحبينو اود آئمه ثلاثه دليل دادي،چه تازه انګور په اوچولو سره كميږی.په دي وجه د زيدبن عياش حديث «أو ينقص إذا جف فقيل نعم فقال ﷺ لا» په وجه بيع جائز نه ده.

> وَقِيلَ او ونيلی شوی دی لَا يَجُوزُ بِالِاتِّفَاقِ چي بالاتفاق جائز نه دی. اعْتِبَارًا بِالْحِنْطَةِ الْمَقْلِيَّةِ بِغَيْرِ الْمَقْلِيَّةِ د اورتو غنمو بيع د بغيراورتوغنمو په عوض باندي په قياس كاوه سره.

**تشريح:-** د بعض حضراتو خيال دي،چه د انګورو بيع د اوسكو په عوض متساوياً بالاتفاق ناجائز ده.دصاحبينو په نيز هم اود حضرت امام صاحب په نيزهم.او په دي عدم جواز باندي د قياس نه استدلال شوي دي.يعنی لكه څنګه چي اورتو غنمو بيع د بغير اورتوغنمو په عوض په پيمانه سره برابرناجائز دی.لكه څنګه چي وړاندي تيرشوی دی.هم دغه ډول د عنب يعنی د تازه انګورو بيع په اوچو انګور يعنی د اوسكو په عوض په پيمانه سره د برابرولو باوجود ناجائز ده.

اود امام ابوحنيفه ددي روايت مطابق د ،،بيع التمربالتمر،،اود،، بيع العنب بالزبيب په مينځ كي توپير بيانول ضروری دی.ځكه چي د امام صاحب په نيزبيع التمر بالرطب متساوياً جائز ده.او ددي روايت مطابق بيع العنب بالزبيب متساوياً ناجائز ده.بهرحال وجه د توپير داده،چه په رطب باندي د تمر اطلاق په حديث «أو كل تمرخيبر هكذا» سره ثابت دي.نو رطب د تمر په عوض خرڅول،تمر د تمر په عوض خرڅول دی.او تمر د تمر په عوض برابر برابر خرڅول جائزدی.نو رطب د تمر په عوض برابر برابر خرڅول به هم جائز وی.

اود زبيب اطلاق په عنب باندي چونكه په حديث سره ثابت نه دي.په دي وجه په زبيب او عنب كي د كيل په ذريعه د برابری كاوه باوجود به د تفاوت اعتبار كولي شی.او هركله چي تفاوت معتبر دي.نو بيع به فاسد او ناجائز وی.

> وَالرُّطَبُ بِالرُّطَبِ يَجُوزُ مُتَمَاثِلًا كَيْلًا عِنْدَنَا او تازه كجورو په عوض پيمانه سره برابر خرڅول زموږ په نيز جائز دی. لِأَنَّهُ بَيْعُ التَّمْرِ بِالتَّمْرِ ځكه چي دا ،، بيع التمر بالتمر،، ده.

**تشريح:-** علامه مرغينانی فرمانی،چه د رطب بيع د رطب په عوض،اود عنب بيع د عنب په عوض په پيمانه سره برابرول زموږ په نيز جائز دی.هم دا د امام مالك اود امام احمد قول دي.

اود امام شافعي په نيز ناجائز دی.

د امام شافعي دليل دادي،چه تازه كجوري او تازه انګور په اوچيدلو سره متفاوت كيږی.يعنی تازه كجوري او تازه انګور د اوچيدلو نه روسته ضروری نه ده.چه دواړه عوض برابر وی.بلكه په دواړو كي كمي زياتي واقع كيداي شی.اود كمی زياتی واقع كيدلو نوم ربوا ده.او ربوا ناجائز ده.په دي وجه د تازه كجورو بيع د تازه كجورو په عوض،اود تازه انګورو بيع د تازه انګورو په عوض د كيل په ذريعه برابر ناجائز ده.لكه څنګه چي د غنمو بيع د اوړو په عوض برابر برابر ناجائز ده.

زموږ دليل دادي،چه رطب ته رسول الله ﷺ تمر فرمانيلی دی.نود رطب بيع د رطب په عوض، په حقيقت كي د تمر بيع د تمر په عوض ده.اوحديث «التمر بالتمر مثلاً بمثل» په وجه د تمربيع د تمر په عوض برابر جائز ده.په دي وجه د رطب بيع به د رطب په عوض هم جائز وی.هم په دي باندي قياس كاوه سره د عنب بيع د عنب په عوض برابر برابر



هم جائز دی.

> وَكَذَا بَيْعُ الْحِنْطَةِ الرَّطْبَةِ اوهم دغه ډول پاخه تازه غنم أَوِ الْمَبْلُولَةِ بِمِثْلِهَا يا اوبوكي لامده غنم ددي د مثل په عوض أَوْ بِالْيَابِسَةِ أَوِ التَّمْرِ أَوِ الزَّبِيبِ الْمُنْقَعِ بِالْمُنْقَعِ مِنْهُمَا مُتَمَاثِلًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ (١) يا د اوچو په عوض ( خرڅول) دابوحنيفه او ابويوسف په نيز( جائز دی)

**تشريح:-** علامه مرغينانی فرمانی،چه د شيخينو په نيز د كيل په ذريعه برابرول،د پخو تازه غنمو بيع د پخو تازه غنمو په عوض يا د لوندو غنمو په عوض يا د اوچو غنمو په عوض جائز ده.اوهم دغه ډول د لواندو غنمو بيع د لواندو غنمو،اود اوچوغنمو په عوض برابر برابر جائز ده.دغه ډول د لواندو چوارو بيع د لواندو چوارو په عوض،اود لواندو اوسكو بيع د لوندو اوسكو په عوض برابربرابر جائز ده.

> وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد فرمايي لَا يَجُوزُ جَمِيعُ ذَلِكَ چي دا واړه جائز نه دی لِأَنَّهُ يَعْتَبِرُ الْمُسَاوَاةَ فِي أَعْدَلِ الْأَحْوَالِ ځكه چي امام محمد په اعدل احوال كي د مساوات اعتبار كوی وَهُوَ الْمَآلُ اوهغه د انجام حالت دي.

**حل اللغة:** ① جميع -ټول-② اعدل-عام حالات-③ المساواة-برابری-④ يعتبر-اعتبار كوی

**تشريح:-** او امام محمد فرمانی،چه په ذكرشوی صورتونوكي بيع جائز نه ده.امام شافعي هم ددي قائل دي.

د امام محمد دليل دادي،چه په دوي (دوه) عوضونوكي د مساوات او برابری اعتبار په داسي حالت كي كيږی.كوم چي د ټولو نه زيات برابری كونكي وی.او هغه انجام يعنی د اوچيدلو حالت دي.يعنی د امام محمد په نيز د عوضينو اوچيدلو نه روسته ددي په مينځ كي مساوات او برابری ضروری ده.لكه چي د حديث «وينقص إذا جف فقيل نعم فقال ﷺ لا» نه ښكاره معلوميږی. اوپه ذكرشوی صورتونوكي د عوضينو په مينځ كي في الحال اګرچه مساوات او برابری موجود ده.خود اوچيدلو نه روسته به تفاوت واقع كيږی.په دي وجه په ذكرشوی صورتونوكي بيع ناجائز ده.

> وَأَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ يَعْتَبِرُهُ فِي الْحَالِ، او امام ابوحنيفه د بالفعل حالت اعتبار كوی وَكَذَا أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ عَمَلًا بِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ اوهم دغه ډول ابويوسف په اطلاق حديث باندي عمل كاوه سره،

**تشريح:-** د شيخينو دليل دادي،چه حضرات شيخين په حديث مشهور «الحنطة بالحنطة والتمر بالتمر مثلاً بمثل» حديث باندي عمل كړي دي.اود عقدبيع په وخت د عوضين په مينځ كي د مساوات او برابری اعتبار كوی.يعنی د اموال ربويه په بيع كي د عقدبيع په وخت د دواړه عوضونو برابركيدل ضروری دی.كه روسته برابری پاته شی او كه پاتي نشی.

> إِلَّا أَنَّهُ تَرَكَ هَذَا الْأَصْلَ فِي بَيْعِ الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ مګر ابويوسف خپل دا اصل په بيع الرطب بالتمركي ترك كړي دي لِمَا رَوَيْنَاهُ لَهُمَا هغه حديث په وجه كوم چي موږ صاحبين لپاره روايت كړي دي.

**تشريح:-** البته امام ابويوسف د عقدبيع په وخت د مساوات كاوه اصول په بيع الرطب بالتمر كي دحديث «أو ينقص إذا جف فقيل نعم فقال ﷺ لا» په وجه ترك كړي دي.يعنی په بيع الرطب بالتمر كي كه دواړه عوضونه بالفعل برابر وی.نوبيا هم ددي حديث په وجه د ابويوسف په نيز بيع ناجائز ده.

> وَوَجْهُ الْفَرْقِ لِمُحَمَّدٍ بَيْنَ هَذِهِ الْفُصُولِ وَبَيْنَ الرُّطَبِ بِالرُّطَبِ اود امام محمد په نيز ددي مسئلو اود بيع الرطب بالرطب په منځ كي وجه د توپير داده.

---

١) القول الراجح هو هذا قول الشيخين كذا فى ردالمحتار (٤/٢٠٥) نقلاً عن القول الراجح (٢/٦٣)-

تشريح:- پاتې شوه داخبره چې امام محمد رحمه الله په بيع الرطب بالرطب کې بالفعل د مساوات اعتبار کوی يعنی که رطب د رطب په عوض په کيل باندې برابر خرڅ کړې شي.نود امام محمد رحمه الله په نيز جائز دی.د اوچيدلو نه روسته برابری پاته شي.اوکه پاته نشي.او په ذکرشوی صورتونوکې يعنی د پخوتازه غنمو وغيره بيع کې د انجام حالت يعنی د اوچيدلو نه روسته دمساوات اعتبار کوی.نو په دې کې وجه د توپير څه ده؟

أَنَّ التَّفَاوُتَ فِيمَا يَظْهَرُ چې په دې صورتونوکې تفاوت ښکاره کيږی مَعَ بَقَاءِ الْبَدَلَيْنِ عَلَى الِاسْمِ سره ددې چې دواړه عوضونه هم په دې نوم باندې پاته کيږی الَّذِي عُقِدَ عَلَيْهِ الْعَقْدُ په کوم چې عقد منعقد شوې دې.

تشريح:- ددې ځواب دادې.چه په دې صورتونوکې يعنی د تازه غنمو وغيره په بيع کې د اوچيدلو نه روسته د عوضينو په مينځ کې تفاوت ښکاره کيږی.سره ددې چې دواړه عوضونه هم په دې نوم سره پاته کيږی.په کوم چې عقدمنعقد شوې وو.مثلاً د غنمو اوچيدلو نه وړاندې هم ورته غنم وائی.اود اوچيدلو نه روسته هم ورته غنم وائی.دغه ډول تمر او زبيب د اوچيدلو نه وړاندې هم تمر اوزبيب دی.اود اوچيدلو نه روسته هم ورته تمر او زبيب وائی.په نوم کې ئې څه توپير نه واقع کيږی.

وَفِي الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ او په بيع الرطب بالتمرکې ( تفاوت ښکاره کيږی) مَعَ بَقَاءِ أَحَدِهِمَا عَلَى ذٰلِكَ سره ددې چې په دواړوکې يو په دې نوم باندې پاته کيږی.( په کوم چې عقد واقع شوې وو) فَيَكُونُ تَفَاوُتًا فِي عَيْنِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ نودا به د معقود عليه په ذات کې تفاوت وی.

تشريح:- او په بيع الرطب بالتمر کې د اوچيدلو نه روسته تفاوت ښکاره کيږی.باوجود ددې چې په دواړوکې يويعنی تمرهم په دې نوم سره پاته کيږی.په کوم چې عقد واقع شوې وو.نودا تفاوت د معقودعليه په ذات کې ښکاره شو.اود معقودعليه په ذات کې چې کوم تفاوت وی. هغه د ربوا کيدلو په وجه مفسد وی.په دې وجه په دې صورتونوکې بيع فاسد اوناجائز ده.

وَفِي الرُّطَبِ بِالرُّطَبِ التَّفَاوُتُ بَعْدَ زَوَالِ ذٰلِكَ الِاسْمِ اود رطب بالرطب په بيع کې دا نوم د زائل کيدلو نه روسته تفاوت شوې دې فَلَمْ يَكُنْ تَفَاوُتًا فِي الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ نودا په معقود عليه کې تفاوت نشو فَلَا يُعْتَبَرُ نوددې اعتبار هم نشته.

تشريح:- اود بيع الرطب بالرطب په بيع کې ددې نوم زائل کيدلو نه روسته تفاوت شوې دې.ځکه چې د اوچيدلو نه وړاندې د عوضين نوم رطب وو.اود اوچيدلو نه روسته تمرشو.نو هرکله چې د هغه نوم زائل کيدلو نه روسته تفاوت ښکاره شو.په کوم چې عقدمنعقد شوې وو.دا د معقودعليه په ذات کې تفاوت نشو.او هرکله چې د معقودعليه په ذات کې تفاوت نشو.نو ددې اعتبار به هم نه کيږی.او هرکله چې ددې تفاوت اعتبار نشته.نود رطب بيع د رطب په عوض جائز ده.

## کچه کجورې د چوارو په بدله کښې د بيع حکم

وَلَوْ بَاعَ الْبُسْرَ بِالتَّمْرِ مُتَفَاضِلًا اوکه کچه چوارې ئې د اوچو چوارو په عوض کمی زياتی سره خرڅ کړلې لَا يَجُوزُ نو جائز نه ده لِأَنَّ الْبُسْرَ تَمْرٌ ځکه چې کچه چوارې هم چوارې دی.

تشريح:- بسر:هغه کجوره کومه چې د غوټۍ کلاويدلو نه روسته په ابتدائی شکل کې وی.په اردو ژبه کې ورته گدرا( يعنی کچره ياکچه کجوره) وئيلی شي.
صورت د مسئلې دادې.چه کچه کجورې د اوچو چوارو په عوض په کمی زياتی سره خرڅول ناجائز دی. ځکه چې بسر هم تمر دی.اود تمر بيع د تمر په عوض کمی زياتی سره ناجائز وی.په دې وجه د بسر بيع د تمر په عوض کمی زياتی سره ناجائز وی.البته د کيل په ذريعه برابر برابر خرڅول جائز دی.په دې شرط چې په مجلس د عقدکې يوځانې ( لاس پلاس) قبضه اوکړی.

بِخِلَافِ الْكُفُرَّى په خلاف د غوټۍ ( پلی). حَيْثُ يَجُوزُ بَيْعُهُ بِمَا شَاءَ مِنَ التَّمْرِ ځکه چې دا د څومره چوارو په عوض خرڅول



غواړی.جائز دی اَلتَّانِ بِوَاحِدٍ دوې (دوه) د يو په عوض لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتَمْرٍ ځکه چې غوټۍ چواره نه وی فَإِنَّ هٰذَا الِاسْمَ لَهُ مِنْ أَوَّلِ مَا انْعَقَدَ صُورَتُهُ ځکه چې دا نوم ددې د ابتدائی شکل جوړولو باندې وی لَا قَبْلَهُ ددې نه وړاندې نه وی.

حل اللغة:① الكفرى-دقجورې پوست -② تنعقد-منعقد کيږی-③ عددی-شمارلې شي-④ نسية-قرض

تشريح:- کفری: د راء په شد سره د کجورې د غوټۍ ( پلی) پوست (پوست يعنی د کجورې د ميوې ابتدائی شکل جوړيدلو نه وړاندې حالت ته کفری( غوټۍ يا پلی) وائی.
البته د کجورو د غوټو( يعنی د پلو) بيع د چوارو په عوض برابر هم جائز دی. او په کمی زياتی سره هم جائز دی.نو دوې (دوه) غوټۍ د يوې چوارې په عوض او دوې (دوه) چوارې د يوې غوټۍ په عوض خرڅول جائز دی
دليل دادې.چه کفری( غوټۍ يا پلی) چونکه دکجورې ابتدائی شکل جوړيدلو نه د وړاندې حالت نوم دی.په دې وجه به کفری تمر نه وی.اوهرکله چې کفری تمر نه دې.نو په دې دواړوکې اختلاف جنس اوموندې شو.اود اختلاف جنس په صورت کې عقدبيع متساوياً او متفاضلاً په دواړه طريقه جائز وی.په دې وجه د کفری بيع د تمر په عوض متساوياً او متفاضلاً په دواړه طريقه جائز ده.

وَالْكُفُرَّى عَدَدِيٌّ مُتَفَاوِتٌ،او غوټۍ عددی متفاوت دی حَتّٰى لَوْ بَاعَ التَّمْرَ بِهِ نَسِيئَةً تردې که د غنچې په عوض ئې چوارې پور خرڅ کړلې لَا يَجُوزُ لِلْجَهَالَةِ نود مجهول کيدلو په وجه جائز نه دی.

تشريح:- دا عبارت د يوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه هرکله کفری ( غوټۍ) د تمر هم جنس نه دې.نو په کفری کې بيع سلم جائز کيدل پکار دی.په دې طريقه چې تمر راس المال او کفری مسلم فيه اوگرځولې شي.حالانکه بيع سلم جائز نه ده؟
ځواب"ددې ځواب دادې.چه کفری چونکه عددی متفاوت دی.يعنی د کفری اخستل خرڅول په شمار سره کيږی.او ددې آحاد او افراد د وړوکوالی او غټوالی په وجه په ماليت کې متفاوت وی.په دې وجه مسلم فيه يعنی د کفری مجهول کيدلو په وجه بيع سلم ناجائز ده.تردې که چوارې د کفری په عوض پور خرڅ کړی.نود کفری مجهول کيدلو په وجه به بيع ناجائز وی.ځکه چې کفری ( پلی ) واړه اوغټ وی.ځکه د پور کيدلو په وجه ددې شناخت نشی کيدلې.بلکه د قبضه په وخت به نزاع پيدا شی.په دې طريقه چې مشتری به وړې وړې کفری ورکوی.او بائع به د غټو غټو کفری ( پلو) مطالبه کوی.اود مفضی الی النزاع شی.چونکه مفسد د بيع وی.په دې وجه به په دې صورت کې بيع فاسد وی.

## د زيتون يا د کونځلو د تيلو سره د بيع حکم

قَالَ فرمائی وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الزَّيْتُونِ بِالزَّيْتِ او زيتون د زيتون د تيلو په عوض خرڅول وَالسِّمْسِمِ بِالشَّيْرَجِ، او کونځلې د کونځلو تيل د عوض خرڅول جائز نه دی حَتّٰى يَكُونَ الزَّيْتُ وَالشَّيْرَجُ أَكْثَرَ تردې چې د زيتون تيل اود کونځلو تيل د ددې د تيلو په عوض خرڅول جائز نه دی ... هغه تيلو نه زيات وی مِمَّا فِي الزَّيْتُونِ وَالسِّمْسِمِ کوم چې په زيتون او کونځلوکې دی.

حل اللغة:① الزيتون-د زيتون ميوه-② الزيت-د زيتون تيل-③ السمس-کونځله-④ الشيرج-د کونځلو تيل

تشريح:- زيتون هغه ميوه ده.د کوم نه چې د زيتون تيل اوخی.اوشيرج هغه تيل دی.کوم چې د زيتون نه اوخی.ځجير بورې ( کهل) ته وائی.
صورت د مسئلې دادې.که زيتون د د زيتون د تيلو په عوض يا کونځلې ددې د تيلو په عوض خرڅ کړې شو.اود زيتون تيل د هغه تيلو نه زيات وی.کوم چې په زيتونکې دی.او خالص تيل د هغه نه زيات وی.کوم چې په کونځلوکې وی.نو بيع جائز ده.

فَيَكُونُ الدُّهْنُ بِمِثْلِهِ وَالزِّيَادَةُ بِالثَّجِيرِ چې تيل د تيلو په مقابله کې شی.او زياتوالې د کهل( بورې) په عوض کې شی لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ يَعْرَى عَنِ الرِّبَا ځکه چې دغه وخت به دا عقد د رباء نه خالی شی إِذْ مَا فِيهِ مِنَ الدُّهْنِ مَوْزُونٌ ځکه چې کوم تيل په زيتون يا کونځلوکې دی.هغه وزنی شئ دې.

حل اللغة: ① الدهن-تیل-الثجیر-کهل-یعری-خالی-الربا-سود

تشریح:- دلیل دا دی چې په دې صورت کي ربوا نه متحقق کیږي.او ربوا ځکه نه متحقق کیږي.چه خالص تیل به د
خپل مثل هغه تیلو په عوض کي شي.کوم چې په زیتون یا کونځلو کي دی.اود خالص تیلو زیاتی مقدار به د بورې
(کهل) په مقابله کي شي.او بوره او تیل چونکه مختلف الاجناس دی.ځکه به په دې کي څه ربوا نه متحقق
کیږي.اوکوم تیل چې په زیتون یا کونځلو کي دی.که دا د خالص تیلو نه زیات یا برابر وي.نودا بیع به جائز نه
وي.ځکه چې خالص تیل هم وزنی دی.

وَهٰذَا لِأَنَّ مَا فِيهِ اود زیاتوالي په دې وجه شرط دی.چه کوم تیل په زیتون یا کونځلو کي موجود دی لَوْ كَانَ أَكْثَرَ أَوْ
مُسَاوِيًا لَهُ، که دا ددې دعوض د تیلو نه زیات یا برابر وي فَالثَّجِيرُ وَبَعْضُ الدُّهْنِ أَوِ الثَّجِيرُ وَحْدَهُ فَضْلٌ نو کهل او لږ شان
تیل یا صرف کهل به زیات وي.

تشریح:- اوکوم تیل چې په زیتون یا کونځلو کي دی.هغه هم وزنی دی.ځکه د قدرمع الجنس موجود کیدلو په وجه د
بیع جائز کیدلو لپاره د دواړو عوضونو برابر کیدل ضروري دی.خوکوم تیل چې په زیتون یاکونځلو کي دی.کله چې
دا د خالص تیلو نه زیات شو.نو په دې صورت کي په یو عوض کي به څه تیل او بوره زیاتی شي.اوکه د زیتون یا
کونځلو تیل د خالص تیلو برابر شو.نو په دې صورت کي به بوره زیاتی شي.اود یو عوض زیاتی کیدل اود بل
کمیدل،ددې نوم ربوا دی.نو په دې دواړو صورتونو کي چونکه ربوا لازمیږي.په دې وجه به دا دواړه صورتونه
ناجائز وي.

وَلَوْ لَمْ يُعْلَمْ مِقْدَارُ مَا فِيهِ اوکه ددې تیلو مقدار معلوم نه وي.کوم چې په زیتون یا کونځلو کي موجود دی لَا يَجُوزُ لِاحْتِمَالِ
الرِّبَا نو بیا هم د ربوا د احتمال په وجه جائز نه دی وَالشُّبْهَةُ فِيهِ كَالْحَقِيقَةِ او په رباء کي شبه د حقیقت پشان ده.

تشریح:- اوکه دا معلومه نه وي.چه په زیتون یاکونځلو کي څومره تیل دی.نوبیا هم دا بیع ناجائز ده.ځکه چې په دې
صورت کي د ربوا احتمال دی.اود ربوا شبه هم دغه ډول حرام او ناجائز ده.لکه څنګه چې حقیقت ربوا حرام ده.په
دې وجه به د نه معلومیدلو په صورت کي هم بیع ناجائز وي.

وَالْجَوْزُ بِدُهْنِهِ او غوزان ددې د تیلو په عوض خرڅول وَاللَّبَنُ بِسَمْنِهِ او شیدې ددې د غوړو په عوض وَالْعِنَبُ بِعَصِيرِهِ او
انګور د انګورو د شیرې (بورې) په عوض وَالتَّمْرُ بِدِبْسِهِ عَلٰى هٰذَا الْاِعْتِبَارِ او چوارې ددې د شیرې په عوض خرڅول هم
په دې اعتبار سره دي.

حل اللغة: ① الجوز-غوز-اللبن-شیدې-العنب-انګور-عصیر-جوس

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د غوزانو بیع ددې د تیلو په عوض اود پیو بیع ددې د غوړو په عوض اود
انګورو بیع دانګورو د شیرې په عوض،اود کجورو بیع ددې د شیرې په عوض هم په دې اعتبارسره جائز دی.یعنی
که خالص تیل د هغې تیل نه زیات وي.کوم چې په غوزانو کي دی.اود کجورو یا انګورو خالص شیره د هغه نه
زیاته وي.کومه چې په انګورو یا کجورو کي ده.نودا بیع جائز ده.ګنې جائز نه ده

وَاخْتَلَفُوا فِي الْقُطْنِ بِغَزْلِهِ او مالوچ ددې د تار په عوض خرڅولو کي اختلاف دی.

حل اللغة: ① القطن-مالوچ-غزل-تار-الکرباس-د وړۍ کپړه-کیفما-څنګه چې وي

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه مالوچ ددې د تار په عوض د وزن په اعتبار سره په برابر خرڅولو کي
اختلاف دی.بعض مشائخ د جواز قائل دی.اود جواز دلیل دا بیانوي.چه د مالوچو اود تار دواړو اصل یو
دی یعنی د مالوچو اصل هم کپاس (پومبه) ده.اود تار اصل هم کپاس دی.او دواړه موزوني دي.نو اتحادجنس او
اتحاد قدر دواړه اوموندې شو.په دې وجه مالوچ د تار په عوض برابر برابر خرڅولو کي هیڅ باك نشته.



اود بعض مشائخو قول دی.چه مالوچ د تار په عوض برابر خرڅول هم جائز نه دی.ځکه چې د مالوچو نه په
تارجوړولو سره مالوچ کمیږي.مثلاً که یو کلو مالوچ وودلې شي.یعنی تار ترې جوړ کړې شي.نودا به یو کلو نه
وي.بلکه د یو کلو څخه به کم وي.لکه څنګه چې غنم د اوړو په عوض برابربرابر خرڅول جائز نه دی.

وَالْكِرْبَاسُ بِالْقُطْنِ او د وړۍ کپړه ددې د مالوچو په عوض خرڅول يَجُوزُ كَيْفَمَا كَانَ بِالْإِجْمَاعِ په هرشان بالاجماع
جائز ده.

تشریح:- او د وړۍ کپړه د مالوچو په عوض خرڅول په هره طریقه جائز دی.که د کپړې د مالوچونه دا مالوچ زیات
وي.اوکه برابر وي.او که کم وي.او په دې اجماع ده.ځکه چې سوتي کپړه اود مالوچو جنس مختلف دی.په دې وجه
کمی زیاتی سره خرڅولو کي هیڅ باك نشته.

## د مختلف غوښو یو بل مینځ کښې د بیع حکم

قَالَ وَيَجُوزُ بَيْعُ اللُّحْمَانِ الْمُخْتَلِفَةِ بَعْضِهَا بِبَعْضٍ مُتَفَاضِلًا وَمُرَادُهُ لَحْمُ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ

حل اللغة: ① اللحم؛ غوښه ؛الابل؛ اوښ ؛البقر؛ غوا ؛الغنم؛ چیلۍ

ژباړه فرمائي.او په مختلف غوښو کي بعض د بعض په عوض کمی زیاتی سره خرڅول جائز دی.او ددې نه مراد د
اوښ غوښه،د غوا غوښه او د وزه غوښه ده.

تشریح:- صاحب د عنایه رحمه الله په حیواناتو (څاروو) کي د اتحادجنس او اختلاف جنس په سلسله کي یو قاعده بیان
کړې ده.هغه داچه په زکاة کي که د یو څاروی نصاب په بل څاروی سره پوره کولې شي.نو ددې دواړو جنس یو
دی.لکه د غوا اود میخې،اوکه د یو څاروی نصاب په بل څاروی سره نه پوره کیږي.نو په دوی کي اختلاف جنس
دی.لکه وزه او غوا.

اوس مسئله داده.که غوښه مختلف الاجناس وي.مثلاً د اوښ غوښه ده.د غوا غوښه ده.اود وزه غوښه ده.په دې
کي که یو د بل په عوض کمی زیاتی سره خرڅ کړې شوه.نوجائز ده.ځکه چې د غوا،اوښ اود وزه جنس جلا جلا
دی.اود اختلاف جنس په صورت کښې چونکه په کمی زیاتی سره خرڅول جائز وي.

فَأَمَّا الْبَقَرُ وَالْجَوَامِيسُ جِنْسٌ وَاحِدٌ، اود غوا او میخې غوښه یو جنس دی وَكَذَا الْمَعْزُ مَعَ الضَّأْنِ وَكَذَا الْعِرَابُ مَعَ الْبَخَاتِيِّ اوهم
دغه ډول وزه او ګډه او عربی او بختی یوجنس دی.

حل اللغة: ① جوامیس-میخه-المعز-چیلۍ-الضان-ګډ-العراب-عربی

تشریح:- اود غوا او میخې یو جنس دی.نوپه دوی کي د یو غوښه د بل په عوض کمی زیاتی سره خرڅول جائز نه
دی.اوهم دغه ډول د وزه اود ګډې یوجنس دی.اود عربی اوښ اود بختی اوښ یوجنس دی.نود وزه غوښه د ګډې د
غوښې په عوض،اود عربی اوښ غوښه د بختی اوښ د غوښې په عوض کمی زیاتی سره خرڅول جائز نه دی.

## د مختلف پیو یو بل مینځ کښې د بیع حکم

قَالَ فرمایي وَكَذٰلِكَ أَلْبَانُ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ وهم دغه ډول د غوا او وزه شیدې دی.

تشریح:- شیخ ابوالحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه اوښې،غوا اود وزه په پیو کي هم اختلاف جنس دی.نود یو شیدې د
بل د پیو په عوض کمی زیاتی سره خرڅول جائز دی.

وَعَنِ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا يَجُوزُ اود امام شافعی رحمه الله نه نقل دی.چه جائز نه دی لِأَنَّهَا جِنْسٌ وَاحِدٌ لِاتِّحَادِ الْمَقْصُودِ که چې واړه
شیدې د مقصود متحد کیدلو په وجه یوجنس دی.

تشریح:- خود امام شافعی رحمه الله نه یو روایت دادی.چه په دوی کي د یوغوښه د بل په عوض اود یو شیدې د بل د پیو
په عوض کمی زیاتی سره خرڅول جائز نه دی.ځکه چې د ټولو د غوښې یو جنس دی.اود ټولو د پیو یو جنس
دی.یوجنس ځکه دی.چه د ټولو مقصود یو دی.یعنی غذا حاصلول، یاتقویت حاصلول.نو هرکله چې د ټولو جنس یو

دي.نو په اوبن، غوا،او وزه کې د يوغوښنه د بل د غوښې په عوض اود يو شيدې د بل د پيو په عوض برابربرابر خرخول جائز دی.خو په کمي زياتي سره خرخول جائز نه دی.

وَلَنَا او زموږ دليل دادي أَنَّ الْأُصُولَ مُخْتَلِفَةٌ چې ددې خاروو اصل مختلف دي حَتَّى لَا يَكْمُلَ نِصَابُ أَحَدِهِمَا بِالْآخَرِ فِي الزَّكَاةِ، تردې چې په زکاة کې په دې کې د يونصاب په بل سره نشي پوره کولې فَكَذَا أَجْزَاؤُهَا نوهم دغه ډول ددې اجزاء هم دي.

تشريح:- زموږ دليل دادې.چه غوښنه او شيدې فروع او اجزاء دی.او ددې اصول يعنی اوښه، غوا،او وزه مختلف الاجناس دی.اود اصول اختلاف د فروع اختلاف واجبوی.نو هرکله چې دا اصول يعنی اوبن، غوا،او وزه مختلف الاجناس دی.تردې چې په دوی کې ديو نصاب زکاة، د بل په ذريعه نشي پوره کولې.نو ددې فروع او اجزاء يعنی شيدې او غوښنه به هم مختلف الاجناس وی.اوهرکله چې دا مختلف الاجناس دی.نود يو غوښنه به د بل دغوښې په عوض اود يو شيدې د بل د پيو په عوض کمي زياتي سره خرخول جائز نه وی.

إِذَا لَمْ تَتَبَدَّلْ بِالصَّنْعَةِ کله چې په څه کاريګرئ سره په دې کې څه توپير نه وی شوې.

تشريح:- علامه مرغينانیؒ فرمائی.چه د اوښې ،غوا،اود وزه شيدې هغه وخته پورې مختلفة الاجناس دی.چه ترکومه پورې په څه کاريګرئ سره په دې کې څه توپير اونکړې شي.يعنی شيدې وی.او که توپير اوکړې شوه.مثلاً د درې واړو د پيو پنير جوړ کړې شو.نواوس به دا يوجنس شمارلې کيږي.اوبه کمی زياتی سره به خرخول جائز نه وی.اګرچه اصل يعنی شيدې مختلفة الاجناس دی.

### د مختلفوسرکو خپل مينځ کښې د بيع حکم

قَالَ مصنفؒ فرمايي وَكَذَا خَلُّ الدَّقَلِ بِخَلِّ الْعِنَبِ او هم دغه ډول د کجورو سرکه د انګورو د سرکې په عوض.

حل اللغة: ① خل الدقل-د قجورې سرکه-خل العنب-د انګور سرکه-ماء-اوبه-عصير-رس

تشريح:- دقل: ردی او بيکاره کجورې، خل: سرکه مسئله داده.چه د کجورو سرکه د انګورو سرکې په عوض کمی زياتی سره خرخول جائز دی.

لِلِاخْتِلَافِ بَيْنَ أَصْلَيْهِمَا،څکه چې ددې دواړو اصل کې اختلاف دې فَكَذَا بَيْنَ مَاءَيْهِمَا نوهم دغه ډول ددې دواړو په اوبوکې هم اختلاف دې.

تشريح:- دليل دا دې چې کله ددې دواړو اصل يعنی د کجورو او انګورو په مينځ کې اختلاف دې.نو ددې دواړو په اوبو يعنی په سرکوکې به هم اختلاف وی.اوهرکله چې د کجورو او انګورو په سرکوکې اختلاف دې.نود کجورو سرکه اود انګورو سرګه دوې (دوه) جلا جلا جنسونه شو.

وَلِهَذَا كَانَ عَصِيرَاهُمَا جِنْسَيْنِ اوهم په دې وجه ددې دواړو شيرې (کهل) دوې (دوه) جنسونه دی.

تشريح:- هم دا وجه ده.چه د کجورو په شيره اود انګورو په شيره کې بالاجماع اختلاف جنس دې.او وړاندې تير شوی دی.چه د اختلاف جنس په صورت کې کمی زياتی سره بيع کول جائز دی.په دې وجه د کجورو د سرکې بيع د انګورو د سرکې په عوض متفاضلاً جائز دی.

وَشَعْرُ الْمَعْزِ اود وزه ايخته وَصُوفُ الْغَنَمِ جِنْسَانِ اود ګډ وړئ دوې (دوه) جنسونه دی.

تشريح:- علامه مرغينانیؒ فرمائی.چه د وزه ايخته اود ګډ وړئ جلا جلا دوې (دوه) جنسونه دی.اګرچه پخپله د وزه او ګډې دواړو يو جنس دې.

لِاخْتِلَافِ الْمَقَاصِدِ څکه چې ددې په مقاصدوکې اختلاف دې.



تشريح:- ايخته او د ګډ وړئ دوې (دوه) جلا جلا جنسونه څکه دی.چه ددې په مقاصدوکې اختلاف دې.څکه چې د ايخته نه دوشاله (شړئ) او قيمتی کپړې جوړيږي.اود وړئ نه کمبل او رسئ جوړيږي.نو هرکله چې ايخته او وړئ دوې (دوه) جنسونه دی.نو ددې مبادله هم په کمی زياتی سره جائز ده.

### د وازګې د لم يا غوښې سره د بيع حکم

قَالَ فرمايي وَكَذَا شَحْمُ الْبَطْنِ بِالْأَلْيَةِ او هم دغه ډول د خيټې وازګه د ګډې لم أَوْ بِاللَّحْمِ يا د غوښې په عوض خرخول ناجائز دی.

تشريح:- شحم: وازګه، اليته: د ګډې لم يعنی د کوناټو غوښه،ابو الحسين قدوریؒ فرمائی.چه د خيټې وازګه د ګډ لم يا غوښې په عوض متفاضلاً خرخول جائز دی.

لِأَنَّهَا أَجْنَاسٌ مُخْتَلِفَةٌ لِاخْتِلَافِ الصُّوَرِ وَالْمَعَانِي وَالْمَنَافِعِ اخْتِلَافًا فَاحِشًا څکه چې د صورتونو او معانيو اود منافعو د فاحش اختلاف په وجه ددې جنسونه مختلف دی.

تشريح:- دليل دا دې چې وازګه، لم او غوښنه درې واړو جنس جلا جلا دې.او ددې په اجناسو کې اختلاف کيدل خو ښکاره دی.او په معانيوکې اختلاف څکه دې.چه په دې کې د هريو حقيقت جلا جلا دې.چه په دې کې د يو نوم شحم (وازګه) دې.د دوهم نوم اليته (لم) اود دريم نوم لحم (غوښنه) ده.اوپه منافعو کې د اختلاف علم د علم طب په ذريعه کيدلې شي.نوهرکله چې ددې اشياء ثلاثه اجناس مختلف دی.نو ددې مبادله په کمی زياتی سره هم جائز او صحيح ده.

### د روټئ د غنمو يا د اوړو په بدله کښې د بيع حکم

قَالَ فرمايي وَيَجُوزُ بَيْعُ الْخُبْزِ بِالْحِنْطَةِ وَالدَّقِيقِ مُتَفَاضِلًا او ډوډئ د غنمو او اوړو په عوض متفاضلاً خرخول جائز دی.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه زموږ د أئمهٔ ثلاثه په نيز ډوډئ د غنمو يا اوړو په عوض کمی زياتی سره خرخول جائز دی.په دې شرط چې په مجلس کې عوضين باندې قبضه متحقق شي.

لِأَنَّ الْخُبْزَ صَارَ عَدَدِيًّا څکه چې ډوډئ ياعددی ده أَوْ مَوْزُونًا او يا وزنی ده فَخَرَجَ مِنْ أَنْ يَكُونَ مَكِيلًا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ وَالْحِنْطَةُ مَكِيلَةٌ نو ډوډئ من کل وجه د کيلی کيدلو نه خارج ده.او غنم کيلی شئ دې.

تشريح:- دليل دا دې چې ډوډئ خو يا عددی ده.او يا وزنی ده.خو کيلی نه ده.اوغنم کيلی شئ دې.اوهم دغه ډول اوړه هم کيلی شئ دې.څکه چې اوړه د غنمو جزء دې.نو هرکله چې غنم کيلی شئ دې.اودغه ډول اوړه هم کيلی شئ دې.څکه چې اوړه د غنمو جزء دې.نو هرکله چې غنم او اوړه کيلی شو.او ډوډئ غير کيلی شوه.نود اتحاد قدر فوت کيدلو په وجه تفاضل جائز دې.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اود ابوحنيفهؒ نه روايت دې أَنَّهُ لَا خَيْرَ فِيهِ، چې په دې کې هيڅ خيرنشته وَالْفَتْوَى عَلَى الْأَوَّلِ او فتوی په رومبی قول ده.

تشريح:- د حضرت امام ابوحنيفهؒ نه د نوادر روايت دادې.چه د ډوډئ بيع د غنمو په عوض يا د اوړو په عوض بالکل جائز نه ده.نه متساوياً او نه متفاضلاً،هم دا قول د امام شافعی اود امام احمدؒ دې.ددې روايت دليل دادې.چه ډوډئ او غنم يا ددې په اوړوکې چونکه يو ډول مجانست موجود دې.په دې وجه به ددې په مبادله کې مساوات او برابری شرط وی.او په ډوډئ او غنمو او اوړوکې د مساوات علم چونکه ممکن نه دې.څکه به دسره ددې مبادله جائز نه وی.خو فتوی په اولنی قول ده.يعنی فتوی په جواز ده.

وَهَذَا او دا حکم هغه وخت دې إِذَا كَانَا نَقْدَيْنِ، فَإِنْ كَانَتِ الْحِنْطَةُ نَسِيئَةً کله چې دواړه عوض نغد وی.نو که غنم پور وی جَازَ أَيْضًا بيا هم جائز ده.

تشریح:- بهرحال د بیع جواز هغه وخت وو،چه کله دواړه عوضونه یعنی روټۍ، غنم او اوړه نغد وی.او که غنم او اوړه پور وی.یعنی د ډوډۍ نې دي دواړو سره بیع سلم اوکړو.په دي طریقه چې ډوډۍ راس المال جوړ کړلو.او نغد نې ورکړله.او غنم یا اوړه نې مسلم فیه جوړ کړل.او پور نې کړل.نو هم جائز دی.ځکه چې موزونی شئ یعنی د ډوډۍ عقدسلم یو داسې مکیلی شئ یعنی غنم یا اوړوسره کړي ده.چه ددي صفت او مقدار پیژندل ممکن دی.

وَإِنْ كَانَ الْخُبْزُ نَسِيئَةً اوکه ډوډۍ پور وی يَجُوزُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ نود ابویوسف ﷫ په نیز جائز ده وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى، او فتوی هم په دې ده وَكَذَا السَّلَمُ فِي الْخُبْزِ جَائِزٌ فِي الصَّحِيحِ او هم دغه ډول د ډوډۍ بیع سلم د ابویوسف ﷫ دصحیح قول مطابق جائز ده.

تشریح:- او که ډوډۍ پور کړله.اوغنم یا اوړه نې نغد ورکړل.نودامام ابویوسف﷫ په نیز جائز دی.ځکه چې د امام ابویوسف﷫ په نیز ډوډۍ وزنی شئ دې.او په وزنی شئ کې بیع سلم کول جائز دی.په دې وجه په ډوډۍ کې بیع سلم کول جائز دی.هم په دې قول باندې فتوی ده.علامه مرغینانی﷫ فرمائی.چه د امام ابویوسف﷫ د صحیح قول مطابق په ډوډۍ کې بیع سلم کول هم جائز دی.

وَلَا خَيْرَ فِي اسْتِقْرَاضِهِ عَدَدًا أَوْ وَزْنًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود ابوحنیفه ﷫ په نیز عدداً یا وزناً د ډوډۍ په پور اخستلو کې هیڅ بهتروالي نشته.

تشریح:- علامه مرغینانی﷫ فرمائی.چه د امام ابوحنیفه﷫ په نیز د ډوډۍ پور اخستل، نه په شمیر جائز دی.اونه په تول جائز دی.

لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ بِالْخُبْزِ وَالْخَبَّازِ وَالتَّنُّورِ وَالتَّقَدُّمِ وَالتَّأَخُّرِ ځکه چې د ډوډۍ پخول، پخونکی، تنور، او وړاندې روسته کیدلو سره متفاوت کیږی.

تشریح:- دلیل دا دې چې ډوډۍ د پخولو په وجه متفاوت وی.چه بعض ډوډۍ نرۍ وی.او بعضې پیړې وی.او بعضې غټې وی.او بعضې وړې وی.اوهم دغه ډول د پخونکی (نان پز) په وجه هم متفاوت وی.چه د ماهر (تجربه کار) نان پز ډوډۍ ښائسته وی.اود بې رائی (ناقابله) نان پز پخ شوې ډوډۍ به دومره ښائسته وی.او پخپله د تنور په وجه هم متفاوت وی.چه د نوی تنور ډوډۍ راسته وی.اود زوړ تنور ددې په مقابله کې خرابې وی.او په مقدم او موخر کیدلو سره هم متفاوت وی.چه د تنور ګرمیدلو نه روسته وړومبۍ ډوډۍ زیاتې ښه نه وی.او آخری ډوډۍ ډیرې ښه وی.نو هرکله چې په روټو کې دومره قدرې تفاوت دې.نو ډوډۍ د ذوات الامثال څنې نشوې.او هرکله چې د ذوات الامثال څنې نشوې.نودا به په پور اخستل هم جائز نه وی.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَجُوزُ بِهِمَا[1] لِلتَّعَامُلِ اود امام محمد ﷫ په نیز د تعامل په وجه عدد او وزن دواړو سره جائز ده.

تشریح:- اود حضرت امام محمد﷫ په نیز د خلګو د عادت په وجه د روټو په پور اخستل په شمار سره هم جائز دی.او په تول سره هم جائز دی.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ يَجُوزُ وَزْنًا اود ابویوسف ﷫ په نیز د وزن په اعتبارسره جائز ده وَلَا يَجُوزُ عَدَدًا لِلتَّفَاوُتِ فِي آحَادِهِ او ددې په افراد او آحاد کې د تفاوت په وجه عدداً جائز نه ده.

تشریح:- اود ابویوسف﷫ په نیز په تول سره جائز دی.خو په شمارسره جائز نه دی.په تول سره ځکه جائز دی.چه ډوډۍ د ابویوسف﷫ په نیز وزنی دی.او په شمار سره ځکه جائز نه دی.چه د روټو په آحاد او افراد کې چونکه ډیر زیات تفاوت وی.ځکه به د واپسۍ په وخت نزاع پیدا کیږی.

[1]) القول الراجح هوهذا قول محمد﷫ كذا فی فتح القدیر(۱۷۷۱۶) وردالمحتار(۲۰۹۱٤) والبحرالرائق (۱۳۵۱۶) نقلاً عن القول الراجح (۶۳۱۲)-



## د غلام او مولا په مینځ کښې ربوا نشته

قَالَ فرمائی وَلَا رِبَا بَيْنَ الْمَوْلَى وَعَبْدِهِ لِأَنَّ الْعَبْدَ وَمَا فِي يَدِهِ مِلْكٌ لِمَوْلَاهُ ځکه چې غلام او څه چې دده په قبضه کې دی.د خپل مولا ملك دې فَلَا يَتَحَقَّقُ الرِّبَا ځکه به سود نه متحقق کیږی.

تشریح:- مسئله داده.که غلام،، ماذون له فی التجارت،، وی.او په ده باندې د خلګو دومره قدرې قرضه نه وی.چې دده د رقبۀ احاطه اوکړی.نو ددې غلام او دده د مولا په مینځ کې ربوا نه متحقق کیږی.یعنی په اموال ربویه کې که دا دواړه په کمی زیاتی سره اخستل خرڅول اوکړی.نودا به ربوا نه وی.مثلاً خالد خپل غلام ته مال ورکړلو.اود تجارت اجازت نې ورکړلو.بیا د غلام دوې (دوه) منه غنم د یو من غنمو په عوض واخلی.نودا به ربوا نه وی.ځکه چې غلام اود غلام په قبضه کې چې کوم مال دې.دا واړه دده د مولا ملك دې.نو هرکله چې غلام اوڅه چې دده په قبضه کې دی.د مولا ملك دې.نو مولا او ددې غلام په مینځ کې به د سره بیع متحقق نه وی.اوهر کله چې بیع متحقق نشوه.نو ربوا به هم متحقق نه وی.

وَهَذَا اودا هغه وخت دی إِذَا كَانَ مَأْذُونًا لَهُ کله چې غلام ماذون له وی وَلَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ، او په ده باندې قرضه نه وی فَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ اوکه په ده باندې قرضه وی لَا يَجُوزُ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق جائز نه دې.

تشریح:- او که په غلام باندې د خلګو دومره قدرې قرضه وی.چه دده د رقبۀ احاطه اوکړی.نو ددې غلام اودده د مولا په مینځ کې په اموال ربویه کې کمی زیاتی سره بالاتفاق بیع جائز نه ده.

لِأَنَّ مَا فِي يَدِهِ لَيْسَ مِلْكَ الْمَوْلَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ ځکه چې د امام ابوحنیفه ﷫ په نیز څه چې د غلام په قبضه کې دی.هغه د مولا ملك نه دې.

تشریح:- دلیل دا دې چې په دې صورت کې چې څه هم د غلام په قبضه کې دی.دا د امام ابوحنیفه﷫ په نیز د مولا ملك نه دې.

وَعِنْدَهُمَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْغُرَمَاءِ اود صاحبینو ﷬ په نیز ددې سره د قرضخواه خلګو حق متعلق دې فَصَارَ كَالْأَجْنَبِيِّ نو مولا په مرتبه د اجنبی شو فَيَتَحَقَّقُ الرِّبَا نو رباء به متحقق وی.

تشریح:- اود صاحبینو ﷬ په نیز اګرچه د مولا ملك دې.خو دې سره د پور غوښتونکو حق متعلق دې.بهرحال د امام صاحب اود صاحبینو ﷬ په نیز غلام دخپل مولا لپاره د غیر (پردی) په مرتبه کې شو.اود دوې (دوه) پردو (غیر) په مینځ کې بیع متحقق کیږی.او هرکله چې بیع متحقق کیږی.نود ربوا شرط موجود کیدلو په صورت کې به ربوا هم نه متحقق کیږی.

كَمَا يَتَحَقَّقُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ مُكَاتَبِهِ لکه ځنګه چې د مولا او دده د مکاتب په منځ کې متحقق کیږی.

تشریح:- لکه مولا او ددې دمکاتب په مینځ کې بیع هم متحقق کیږی.او ربوا هم متحقق کیږی.

## د مسلمان او حربی په مینځ کښې د بیع حکم

قَالَ فرمائی وَلَا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْحَرْبِيِّ فِي دَارِ الْحَرْبِ او په دارالحرب کې د مسلمان او حربی په منځ کې ربوا نشته.

تشریح:- ابو الحسین قدوری﷫ فرمائی.چه په دارالحرب کې دمسلمان او حربی په مینځ کې ربوا نشته. یعنی که یومسلمان امان واخلی.او دارالحرب ته لاړ شی.اود یوحربی یو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ کړی.نودا حلال اوجائز دی.

خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ د امام ابویوسف او امام شافعی ﷬ اختلاف دې.

تشریح:- دامام شافعی او امام ابویوسف﷫ په نیز د مسلمان اوحربی په مینځ کې په دارالحرب کې ربوا وی.یعنی یو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅول ناجائز دی.اوهم دا قول د امام مالك اود امام احمد﷫ دې.

**هٰذَا الْإِخْتِيَارُ بِالْمُسْتَأْمَنِ** دي دوارو حضرات په دې باندې قياس كړې دې **مِنْهُمْ فِي دَارِنَا** كوم چې په حربيانو كې زموږ په دارالاسلام كې امان اخستې وي.

**تشريح:-** ددې حضراتو دليل قياس دې.يعنى كه حربى امان واخلى.او په دارحرب كې داخل شى.او دې يو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ كړى.نودا بالاتفاق ناجائز دى.نوهم دغه ډول كه مسلمان امان واخلى.او دارحرب ته داخل شى.اودې داسې كار اوكړى.يعنى يو درهم د دوې (دوه) درهمو په عوض خرڅ كړى.نوهم به ناجائز وى.

**وَلَنَا** او زموږ دليل دادې **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** "چې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى {**لَا رِبَا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْحَرْبِيِّ فِي دَارِ الْحَرْبِ**} ([1])چه په دارالحرب كې د مسلمان او حربى په منځ كې ربوا نشته.

**تشريح:-** زمونږ دليل د رسول الله ﷺ قول ﴿لاربوا بين المسلم والحربي في دار الحرب﴾ دې.

**وَلِأَنَّ مَالَهُمْ مُبَاحٌ فِي دَارِهِمْ** او خكه چې د حربيانو مال ددوى په دار كې مباح دې **فَبِأَيِّ طَرِيقٍ أَخَذَهُ الْمُسْلِمُ** نو مسلمان چې دا په كومه طريقه اخلى **أَخَذَ مَالًا مُبَاحًا** مباح مال به اخلى **إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ غَدْرٌ** په دې شرط چې په دې كې دهوكه نه وى.

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه په دارالحرب كې د حربيانو مال مباح الاصل اوغيرمعصوم دې.ددې په هره طريقه د اخستلو اجازت دې په دې شرط چې په دهوكه ئې نه وى اخستې.خكه چې غدر او دهوكه حرام ده.

**بِخِلَافِ الْمُسْتَأْمَنِ مِنْهُمْ** په خلاف ددوى د امن اخستونكى **لِأَنَّ مَالَهُ صَارَ مَحْظُورًا بِعَقْدِ الْأَمَانِ** خكه چې د عهد امان په وجه دده مال ممنوع شوې دې.

**تشريح:-** په خلاف د هغه حربى كوم چې امان واخلى.او دارالاسلام ته راشى.خكه چې دده مال د عقدامان په وجه محفوظ شوې دې.او هركله چې دده مال محفوظ شو.نو دده څخه به د زيات اخستلو اجازت نه وى.

## باب الحقوق

ژباړه (دا) باب د حقوقو (په بيان كې) دې.

**تشريح:- السوال**® د ترتيب په لحاظ سره د كتاب البيوع په اول كې د خياراتو په بيان كې د دې باب راوړل پكار وو نو دا ئې دلته ولې راوړلو؟

**الجوابان**® ① علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائي.چه دا باب د باب خيار نه وړاندې ذكركول مناسب وو.خوچونكه مصنف رحمه الله دجامع صغير په ترتيب باندې كتاب مرتب كړې دې.په دې وجه ئې د،،باب الربوا،،نه پس،،باب الحقوق،، ذكر كړې دې. ② حقوق توابع دى.اود توابع ذكر د متبوع نه روسته وى.په دې وجه د بيوع د مسئلو نه روسته حقوق ذكركړې شوى دى.بيت: د چهت، چارديوارئ، او دروازې نوم دې.چه په هغې كې شپه تيره كړې شى.زموږ په زمانه كې دې ته كوټه، اطاق او حجره (بيټك) وائى.منزل: ددې نه زيات وى.چه په دې كې يوڅو كمرې وى.او دالانچه (باورچى خانه) وى.او ليټرين (بيت الخلاء) وى.خوپه دې كې غولې (صحن) نه وى.دار: په كوم كې چې څومنزله وى.دا تفصيل د اهل عرب اود اهل كوفه د عرف مطابق دې.خو زموږ په علاقو كې دې ټولو ته په فارسى كې خانه او په پښتو كې كور وائى.

(1) غريب الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم قال وأسند البيهقي في المعرفة في كتاب السير عن الشافعي رحمه الله قال قال أبو يوسف رحمه الله إنما قال أبوحنيفة رحمه الله هذا لأن بعض المشيخة حدثنا عن مكحول عن رسول الله ﷺ أنه قال لا ربا بين أهل الحرب أظنه قال وأهل الإسلام قال الشافعي رحمه الله وهذا ليس بثابت ولا حجة فيه إنتهى كلامه كذا في نصب الرأية ٤/٨٤ـ



حقوق، د حق جمع ده.ددې نه هغه حقوق مراد دى.كوم چې د مبيع تابع وى.اود ذكر كاوه نه بغير په مبيع كې داخليږي.

### د بالاخانې اخستونكى لپاره د نورو متعلقه حقوقو مسئله

**وَمَنِ اشْتَرَى مَنْزِلًا** اوكه يوكس داسې منزل واخستلو **فَوْقَهُ مَنْزِلٌ** چې ددې د پاسه منزل دې **فَلَيْسَ لَهُ الْأَعْلَى** نو دده لپاره به پورتنې منزل نه وى. **إِلَّا أَنْ يَشْتَرِيَهُ بِكُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ** كله چې لاندينې منزل سره د هرحق كوم چې ددې لپاره ثابت دې. **أَوْ بِمَرَافِقِهِ** يا سره د مرافق **أَوْ بِكُلِّ قَلِيلٍ وَكَثِيرٍ** يا سره د هرقليل او كثير **هُوَ فِيهِ أَوْ مِنْهُ** كوم چې په دې كې دې واخلى.

**حل اللغة:** ① منزل-كور-فوق-پورته-مرافق-حقوق-يشترى-اخلى

**تشريح:-** دلته درې مسئلې دى رومبئ مسئله داچه يو داسې منزل (كور) ئې واخستلو.چه ددې دپاسه دوهم منزل دې.نود مشترى لپاره به پورتنې منزل نه وى.خوكه مشترى دا اووئيل.چه زه لاندې منزل اخلم.سره ددې د هرحق كوم چې ددې لپاره ثابت دې.يا ددې د مرافق (متعلقاتو) سره يا د هرقليل او كثيرسره كوم چې په منزل كې دى.يا منزل سره متعلق دى.نوددې الفاظو ذكر كاوه په صورت كې به د لاندينې منزل په بيع كې پورتنې منزل هم داخل وى.

**وَمَنِ اشْتَرَى بَيْتًا فَوْقَهُ بَيْتٌ** اوكه يو كس داسې بيت چې په دې باندې دوهم بيت دې **بِكُلِّ حَقٍّ** هوله سره د هرحق كوم چې ددې لپاره ثابت دې.واخستلو **لَمْ يَكُنْ لَهُ الْأَعْلَى** نو پورتنې بيت به دده لپاره نه وى

**حل اللغة:** ① بيت-دشپې تيرولوځائې-الاعلى-پورته-العلو-بالاخانه-الكنيف-بيت الخلاء

**تشريح:-** دويمه مسئله داده.كه يوكس داسې بيت (كور) واخستلو.چه په دې باندې دوهم بيت دې.نو پورتنې بيت به مشترى ته نه ملاويږى.اگرچه سره د هرحق كوم چې ددې بيت لپاره ثابت دې.يا سره د مرافق يا سره د هرقليل او كثير ئې اخستې وى.

**وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا بِحُدُودِهَا** اوكه يوكس يو دار سره ددې د حدودو واخستلو **فَلَهُ الْعُلُوُّ وَالْكَنِيفُ** نود مشترى لپاره به بالاخانه او بيت الخلاء هم وى.

**تشريح:-** دريمه مسئله كه يوكس يو دار(كور) سره ددې د حدودو واخستلو.نو مشترى به ددې بالاخانه او بيت الخلاء (ټټئ) هم ملاويږى.اگرچه د حقوق وغيره ذكر ئې نه وى كړې.

**جَمَعَ بَيْنَ الْمَنْزِلِ وَالْبَيْتِ وَالدَّارِ** فاضل مصنف رحمه الله منزل، بيت، او دار درې واړه جمع كړى دى **فَاسْمُ الدَّارِ يَنْتَظِمُ الْعُلُوَّ** نود دار لفظ بالاخانې ته ګډ دې **لِأَنَّهُ اسْمٌ لِمَا أُدِيرَ عَلَيْهِ الْحُدُودُ** خكه چې دار ددې نوم دې.كوم چې حدودو راګير كړې دې **وَالْعُلُوُّ مِنْ تَوَابِعِ الْأَصْلِ وَأَجْزَائِهِ** او بالاخانه د اصل توابع او اجزاء څخه ده **فَيَدْخُلُ فِيهِ** په دې وجه به په دار كې بالاخانه هم داخل وى.

**تشريح:-** علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د قدورى مصنف رحمه الله منزل، دار، او بيت درې واړه جمع كړى دى.نود دار لفظ بالاخانې ته شامليږى.خكه چې دار د هغه ځكر نوم دې.چه د هغې حدود متعين كړې شوې وى.او په بيوت، د چت نه بغيرصحن، او بالاخانه باندې مشتمل وى.نو بالاخانه چونكه د دار د توابع اود اجزاؤ څخه ده.په دې وجه د اصل دار په بيع كې به بالاخانه هم داخل وى.اگرچه ﴿بكل حق هو له يا بمرافقه يا بكل قليل و كثير هو فيه يا منه﴾ ئې نه وى ونيلې.

**وَالْبَيْتُ اسْمٌ لِمَا يُبَاتُ فِيهِ** او بيت د داسې ځائې نوم دې.چه په دې كې شپه تيره شى **وَالْعُلُوُّ مِثْلُهُ** او بالاخانه ددې مثل دې **وَالشَّيْءُ لَا يَكُونُ تَبَعًا لِمِثْلِهِ** او شئ د خپل مثل تابع نه وى **فَلَا يَدْخُلُ فِيهِ** په دې وجه به بالاخانه د بيت په بيع كې داخل نه وى **إِلَّا بِالتَّنْصِيصِ عَلَيْهِ** مگر دا چې ددې صراحت شوې وى.

**حل اللغة:** ① تنصيص-صراحت-السكنى-استوګنه-قصور-كمى-الدواب-جمع د دابة، څاروې

**تشريح:-** بيت د داسې خانې نوم دې.چه په هغې کي شپه تيره شي.او بالاخانه ددې مثل وی.او شئ چونکه د خپل مثل تابع نه وی.په دې وجه به بالاخانه د بيت په بيع کي داخل نه وی.اګرچه **«بكل حق هوله يا بمرافقه يا بكل قليل وكثير هو فيه يا منه»** ئې وئيلی وی.او اخستې ئې وی.ځکه چې ددې الفاظو په ذريعه که بالاخانه د بيت په بيع کي داخله کړې شی.نو بالاخانه به د بيت په بيع کي داخل نه وی.که د بيت په بيع کي د بالاخانې صراحة ذکر شوې وی.نو په داسې صورت کي به بالاخانه د بيت په بيع کي داخليږی.

**وَالْمَنْزِلُ بَيْنَ الدَّارِ وَالْبَيْتِ** اومنزل د بيت او دار د منځ شئ دې **لِأَنَّهُ يَتَأَتَّى فِيهِ مَرَافِقُ السُّكْنَى** ځکه چې په دې کي د اوسيدلو واړه آرام حاصليږی **مَعَ ضَرْبِ قُصُورٍ** په معمولی شان کموالی سره **إِذْ لَا يَكُونُ فِيهِ مَنْزِلُ الدَّوَابِّ** ځکه چې په منزل کي د څاروو تړلو ځائې نه وی.

**تشريح:-** منزل د دار اوبيت په مينځ کي يوڅيز دې.ځکه چې په منزل کي د سکونت واړه آرام حاصليږی.خوځه قدرې په کمی سره.ځکه چې په منزل کي د غيرچت والا غولي (صحن) نه وی.اود څاروو اوسولو ځائې پکي نه وی.نو هرکله چې د هرحق يا مرافق يا د قليل او کثير ذکراوکړې شی.نو د منزل په بيع کي به ددې بالاخانه د منزل تابع وی.او داخل به وی.

**فَلِشَبَهِهِ بِالدَّارِ** نو چونکه منزل د دار مشابه دې **يَدْخُلُ الْعُلُوُّ فِيهِ تَبَعًا** په دې وجه د توابع د ذکر په وخت به بالاخانه د منزل تابع وی **عِنْدَ ذِكْرِ التَّوَابِعِ** اود منزل په بيع کي به داخل وی **وَلِشَبَهِهِ بِالْبَيْتِ** اوچونکه منزل د بيت مشابه دې **لَا يَدْخُلُ فِيهِ بِدُونِهِ** په دې وجه د توابع د ذکر کاوه نه بغير بالاخانه د منزل په بيع کي نه داخليږی.

**تشريح:-** دليل دا دې چې منزل د دارمشابه دې.او منزل چونکه د بيت هم مشابه دې.په دې وجه په درې واړه عبارتونوکي د يوعبارت **«بكل حق هوله...وغيره»** ذکر کاوه نه بغير به بالاخانه د منزل په بيع کي داخل نه وی.

**وَقِيلَ فِي عُرْفِنَا يَدْخُلُ الْعُلُوُّ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ**[1] او وئيلی شوی دی.چه زمونږ په عرف کي په ټولو صورتونوکي بالاخانه داخليږی **لِأَنَّ كُلَّ مَسْكَنٍ يُسَمَّى بِالْفَارِسِيَّةِ خَانَهُ** ځکه چې (د اوسيدولو) هرمسکن ته خانه وائی **وَلَا يَخْلُو عَنْ عُلُوٍّ** اودا د بالاخانه نه خالی نه وی.

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه دا تفصيل د اهل کوفه اود اهل عرب د عرف مطابق دې.ګنې زمونږ عرف يعنې په بخارا ، سمرقند وغيره کي هرمسکن ته په فارسئ کي خانه وائی.او خانه د بالاخانې نه خالی نه وی.د هرکور دپاځه بالاخانه وی.په دې وجه د خانه په بيع کي به بالاخانه داخل وی.که په لفظ د بيت سره ئې اخستې وی.اوکه په لفظ د منزل سره ئې اخستې وی.اوکه په لفظ د دار سره ئې اخستې وی.

**وَكَمَا يَدْخُلُ الْعُلُوُّ فِي اسْمِ الدَّارِ يَدْخُلُ الْكَنِيفُ** اود دار په بيع کي لکه څنګه چې بالاخانه داخليږی.هم دغه ډول بيت الخلاء هم داخليږی **لِأَنَّهُ مِنْ تَوَابِعِهِ** ځکه چې دا هم د دار توابع ځنې دې.

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د دار په بيع کي چې لکه څنګه بالاخانه داخليږی.هم دغه ډول ليټرين (تشی) هم داخليږی.ځکه چې دا هم د دار توابع ځنې دې.

**وَلَا تَدْخُلُ الظُّلَّةُ** او سائبان (سپر) به نه داخليږی **إِلَّا بِذِكْرِ مَا ذَكَرْنَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ**[2] خود پورتنی عبارت ذکر کاوه سره، (دا) د ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

[1] القول الراجح هو هذا قول صاحب قيل كذا فى فتح القدير (١٨٠\٦) وردالمحتار (٢١١\٤) نقلاً عن القول الراجح (٦٥\٢)-

[2] القول الراجح هوهذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى حاشية الشبلى (٩٨\٤) ورجحه مفتى غلام قادر مدظله العالى انظرالقول الراجح (٦٦\٢)-



**حل اللغة:** ① **الظلة**-سپر\سائبان-② **هواء**-فضاء-③ **الطريق**-لار-④ **مبنى**-جوړ شوي

**تشريح:-** ظلة: هغه سائبان دې.کوم چې په دروازه باندې وی.چه ددې لاندې لاره وی.فقهاء د ،،ظلة،، نه هم دا معنی مراد اخلی.بعض حضرات وائی.ظلة هغه سائبان دې.چه ددې يو اړخ په دارمبيعه باندې وی.او دوهم اړخ ئې په بل دارباندې وی.يعنې هغه چت کوم چې د دوې (دوه) کورونو په ديوالونو باندې لرګی کيږدی.او سپر (دالان) جوړکړې شي.

د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به سائبان (چوپال) د دار په بيع کي داخل نه وی.سوا ددې نه که په تيرشوي درې واړه عبارتونوکي څه عبارت ذکر کړې شی.يعنې که **«بكل حق هوله يا بمرافقه يا بكل قليل وكثير هو فيه يا منه»** اووائی.او واخلی.نو سائبان به د دار په بيع کي داخل وی.

**لِأَنَّهُ مَبْنِيٌّ عَلَى هَوَاءِ الطَّرِيقِ** ځکه چې سائبان (سپر) د لارې په فضاء باندې چت دې **فَأَخَذَ حُكْمَهُ** په دې وجه دې دلارې حکم حاصل کړو.

**تشريح:-** دليل دا دې چې سائبان د لارې په ډګر باندې جوړولې شی.نود سائبان به هم هغه حکم وی.کوم چې د لارې وی.او لاره د بيانولو نه بغير په بيع کي نه داخليږی.نوسائبان به هم د بيان نه بغير نه داخليږی.د سائبان ذکر که صراحةً اوکړی.اوکه په عبارات ثلاثه کي څه عبارت ذکر کړی.

**وَعِنْدَهُمَا إِنْ كَانَ مِفْتَحُهُ فِي الدَّارِ** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز که د سائبان (سپر) لاره په کورکي ده **يَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِ شَيْءٍ مِمَّا ذَكَرْنَا** نودا به د ذکرشوی عبارت ذکر کاوه نه بغير د دار په بيع کي داخليږی.

**حل اللغة:** ① **مفتح**-دلارې سر-② **شابه**-مشابه شوه-③ **الكنيف**-بيت الخلاء-④ **توابع**-جمع د تابع

**تشريح:-** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز که د سائبان لاره هم په دې کورکښې وی.نود ذکرشوی عبارتونو ذکر کاوه نه بغير به هم سائبان د دار په بيع کي داخليږی.

**لِأَنَّهُ مِنْ تَوَابِعِهِ** ځکه چې دا د دار توابع ځنې دې **فَشَابَهَ الْكَنِيفَ** نود بيت الخلاء مشابه شوه.

**تشريح:-** دليل دا دې چې سائبان د دار د توابع ځنې دی.ځکه د بيت الخلاء مشابه شو.او بيت الخلاء د ذکر کاوه نه بغير ددار په بيع کي داخليږی.په دې وجه سائبان به هم د ذکر کاوه نه بغير د دار په بيع کي داخل وی.

### په يوکورکښې د کمرې ،يا چت ياد اوسيدلوځائې اخستونکي لپاره د لارې مسئله

**قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى بَيْتًا فِي دَارٍ أَوْ مَنْزِلًا أَوْ مَسْكَنًا** فرمائی.اوکه يوکس په دارکي يو بيت، يامنزل يا مسکن واخستلو **لَمْ يَكُنْ لَهُ الطَّرِيقُ** نود مشتری لپاره به ددې لاره نه وی **إِلَّا أَنْ يَشْتَرِيَهُ بِكُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ** مګرداچه دا په هرحق سره واخلی.کوم چې دده لپاره ثابت دې **أَوْ بِمَرَافِقِهِ** يا ددې مرافق سره **أَوْ بِكُلِّ قَلِيلٍ وَكَثِيرٍ** يا دهر قليل او کثير سره واخلی.

**حل اللغة:** ① **مسكن**-ځائې د استوګنه-② **الطريق**-لاره-③ **مرافق**-حقوق-④ **قليل\كثير**-کم\زيات

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.که يوسړی په دارکي دننه يو بيت واخستلو.يا ئې منزل واخستلو.يائې مسکن واخستلو.د هرهغه حق سره کوم چې ددې لپاره ثابت وی.يا ددې د مرافق سره واخلی.يائې هرقليل اوکثير سره واخلی.نو لاره به په دې بيع کي داخل وی.اود مشتری لپاره به ثابته وی.

**وَكَذَا الشُّرْبُ وَالْمَسِيلُ** اوهم دا حکم د اوبو د برخې (حصې) اود اوبو د نالئ (لختی) دې.

**تشريح:-** دغه ډول د زمکې په بيع کي به د اوبوحصه اود اوبو نالئ داخل نه وی.يعنې که يوکس مځکه واخستله.اود

حق شرب اود حق مسیل (د اوبو دلارې یا لختی) ذکر نې اونکړلو.اونه نې په عبارات ثلاثه کې د کوم یوذکر اوکړلو.نومشتري لپاره به نه حق شرب وی.اونه به حق مسیل وی.اوکه په عبارات ثلاثه کې نې د کوم یو ذکر اوکړلو.نوحق شرب اوحق مسیل به په بیع کې داخل وی.

لِأَنَّهُ خَارِجُ الْحُدُودِ ځکه چې دا د حدود نه خارج دی إِلَّا أَنَّهُ مِنَ التَّوَابِعِ مګر داچه د توابع ځنې دی فَيَدْخُلُ بِذِكْرِ التَّوَابِعِ نود توابع په ذکرسره به داخل وی.

تشریح:- ددې دلیل دادې.چه لاره او شرب او مسیل درې واړه د مبیع د حدودو نه خارج دی.خود مبیع د توابع ځنې دی.نودا درې واړه شیان چونکه د مبیع د حدودونه خارج دی.په دې وجه توابع یعنې په عبارات ثلاثه کې د کوم یوعبارت ذکر کاوه نه بغیر دا په بیع کې داخل نه وی.خو چونکه دا د مبیع د توابع ځنې دی. په دې وجه به توابع یعنې په عبارات ثلاثه کې د کوم یوعبارت ذکر کاوه نه بغیر دا په بیع کې داخل وی.

بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ په خلاف د اجاره لِأَنَّهَا تُعْقَدُ لِلْانْتِفَاعِ ځکه چې اجاره د نفع اخستلو لپاره منعقد کیږی فَلَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِهِ، او نفع حاصلول نه متحقق کیږی.مګر لارې، یا شرب (د پټی د اوبه کولوحق) یا مسیل (لختی) سره، إِذِ الْمُسْتَأْجِرُ لَا يَشْتَرِي الطَّرِيقَ عَادَةً وَلَا يَسْتَأْجِرُهُ ځکه چې مستاجر په عامه توګه (عام طور) نه لاره اخلی.اونه دا په اجاره اخلی فَيَدْخُلُ تَحْصِيلًا لِلْفَائِدَةِ الْمَطْلُوبَةِ مِنْهُ نو دې د اجاره نه مطلوبه فائده حاصلولو دپاره (په اجاره کې) داخلیږی.

حل اللغة: ① الانتفاع-فائده اخستل-② تحصیل- لپاره دحاصلولو-③ المطلوبة-مقصود-④ تنعقد-منعقد کیږی

تشریح:- په خلاف د اجاره، یعنې که کور په کرایه باندې واخستلې شو.نو لاره به په اجاره کې داخله وی.اګرچه د حقوقو او مرافق ذکر نه وی شوی.دغه ډول به د زمکې په اجاره کې حق شرب او حق مسیل داخل وی.اګرچه په عبارات ثلاثه کې د کوم یو عبارت یعنې د حقوق یا مرافق ذکر نې نه وی کړې.ددې وجه داده.چه اجاره د نفع حاصلولو لپاره منعقد کیږی.هم دا وجه ده.چه کوم شئ فی الحال غیر منتفع به وی.لکه بنجر او شوریده (شاړې) زمکې اجاره صحیح نه ده.نوهرکله چې اجاره د نفع حاصلولو لپاره منعقد کیږی.اود کور نه د لارې نه بغیر نفع اخستل.اود زمکې نه د شرب او مسیل (نالئ) نه بغیر نفع اخستل ممکن نه دی.ځکه چې په عامه توګه (عام طور) باندې نه مستاجر لاره اخلی.اونه نې په اجاره باندې اخلی.نود اجارې نه مطلوبه فائده حاصلولو لپاره د کور په اجاره کې لاره اود زمکې په اجاره کې شرب او مسیل داخل وی.

أَمَّا الْانْتِفَاعُ بِالْمَبِيعِ مُمْكِنٌ بِدُونِهِ خود مبیع نه نفع اوچتول، د لارې نه بغیر ممکن دې لِأَنَّ الْمُشْتَرِي عَادَةً يَشْتَرِيهِ، وَقَدْ يَتَّجِرُ فِيهِ ځکه چې مشتري کله کله یوکور اخلی.او په دې کې تجارت کوی فَيَبِيعُهُ مِنْ غَيْرِهِ فَحَصَلَتِ الْفَائِدَةُ، وَاللهُ تَعَالَى أَعْلَمُ یعنې دا د بل په لاس خرڅوی.نو فائده حاصلوی.

تشریح:- د بیع په صورت کې مبیع یعنې کور اوزمکې نه، د لارې نه بغیر د کورنه اود شرب اومسیل نه بغیر د زمکې نه فائده حاصلیږی.اوهرکله چې ددې نه بغیر د مبیع یعنې د کور اوزمکې نه فائده حاصلیږی. نودا شیان توابع یعنې حقوق اومرافق ذکر کاوه نه بغیر په بیع کې نه داخلیږی.

## بَابُ الْاسْتِحْقَاقِ

ژباړه (دا) باب د استحقاق (په بیان کې) دې.

تشریح:- استحقاق: حق طلب کول،په دې باب او باب الحقوق کې مناسبت ښکاره دې.هغه دا چې په اول باب کې ذکر د حقوقو وو او په دې باب کې د دغه حقوقو داستحاق ذکر دې.چه یوکس به د دغه حقوقو په کومه طریقه مستحق ګرځی.

**د وینځې اخستلو نه روسته ددې د بچې پیدا کیدلو نه روسته ددې مستحق کیدل**

وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً اوکه یو کس یوه وینځه واخستله فَوَلَدَتْ عِنْدَهُ بیا دې مشتري سره بچې راوړو فَاسْتَحَقَّهَا [illegible] بِبَيِّنَةٍ



بیا یو سړی د ګواهانو په ذریعه ددې مستحق شو فَإِنَّهُ يَأْخُذُهَا وَوَلَدَهَا نو مستحق به وینځه او ددې بچې اخلی.

حل اللغة: ① جارية-وینځه-② ولدت-اوزیږولو-③ رجل-سړې-④ الاخذ-اخستل

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی یوه وینځه واخستله.په دې نې قبضه اوکړه.بیامشتري سره د وینځې د خپل مولا نه علاوه د بل کس د نطفې نه بچې پیدا شو.بیایوسړی په دې وینځه باندې د ګواهانو په ذریعه استحقاق ثابت کړلو.نودا مستحق به وینځه هم اخلی.او دې سره به ددې بچې هم اخلی.

وَإِنْ أَقَرَّ بِهَا لِرَجُلٍ اوکه مشتري د یوسړی لپاره ددې وینځې اقرار اوکړو لَمْ يَتْبَعْهَا وَلَدُهَا نو د وینځې بچې به دې پسې نه ځی.

تشریح:- اوکه مشتري د بل یوسړی لپاره ددې وینځې اقرار اوکړلو.نومقرله به وینځه اخلی.خو ددې بچې به نه اخلی. یعنې دکوم کس لپاره چې مشتري د وینځې اقرار کړې دې.هغه ته به وینځه خو ورکولې شی.خو ددې بچې به نشی ورکولې.

وَوَجْهُ الْفَرْقِ او وجه د توپیر داده أَنَّ الْبَيِّنَةَ حُجَّةٌ مُطْلَقَةٌ چې بینه حجت مطلقه دې فَإِنَّهَا كَاسْمِهَا مُبَيِّنَةٌ ځکه چې دا د خپل نوم پشان ښکاره کونکې دې فَيَظْهَرُ بِهَا مِلْكُهُ مِنَ الْأَصْلِ نود بینه په ذریعه به ددې ملك اصل سره ښکاره کیږی وَالْوَلَدُ كَانَ مُتَّصِلًا بِهَا او بچې (چونکه) ددې سره متصل وو فَيَكُونُ لَهُ په دې وجه به بچې هم دده وی.

حل اللغة: ① حجة-دلیل-② متصل-یوځائې-③ الاخبار-خبر ورکول-④ الانفصال-جدا کیدل

تشریح:- د بینه او اقرار په مینځ کې وجه د توپیر داده.چه بینه د ټولو خلګو په حق کې حجت کامله دې.ځکه چې بینه د قاضي د قضاء په وجه حجت وی.او قاضی ته ولایت عامه حاصل وی.په دې وجه به بینه د ټولو خلګو په حق کې حجت کامله وی.او بینه لکه څنګه چې ددې د نوم نه ښکاره ده.اصلی حالت ښکاره کونکې دې.یعنې کوم شئ چې په نفس الامر کې د شهادت نه وړاندې ثابت وو.بینه دا ښکاره کوی.نود بینه په ذریعه به د مستحق سړی ملك د اصل نه ثابت وی.یعنې د بینه په ذریعه به دا ثابت شی.چه دا وینځه په اصل کې دده ملك دې.او هغه وخت بچې هم چونکه وینځې سره متصل وو.په دې وجه چې کله وینځه د مستحق سړی ملك شو.نو ددې بچې به هم ددې مستحق سړی وی.

أَمَّا الْإِقْرَارُ او پاتې شو اقرار حُجَّةٌ قَاصِرَةٌ يُثْبِتُ الْمِلْكَ فِي الْمُخْبَرِ بِهِ ضَرُورَةَ صِحَّةِ الْإِخْبَارِ، نودا حجت قاصره دې.د اخبار صحیح کیدلو ارتیا سره،مخبر به (وینځه) کې ملك ثابتوی وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِإِثْبَاتِهِ بَعْدَ الْانْفِصَالِ ودا ارتیا د بچې جداکیدلو نه روسته ملك ثابتولو سره پوره کیږی. فَلَا يَكُونُ الْوَلَدُ لَهُ انو بچې به دده نه وی.

تشریح:- او پاتې شو اقرار نودا ناقص حجت دې.صرف د اقرار صحیح کیدلو په ارتیا سره به فی الحال په وینځه کې ملکیت ثابت شی.اودا ارتیا د بچې پیدا کیدلو نه روسته صرف په وینځه کې ملکیت ثابتیدلو سره پوره کیږی.نو ګویا د مشتري د اقرار کاوه په وجه دمقرله ملکیت صرف په وینځه کې ثابت شو.او په بچې کې ثابت نشو.نوهرکله چې د مقرله ملکیت په وینځه کې ثابت شو.اوپه بچې کې ثابت نشو.نو مقرله ته به صرف د وینځې اخستل جائز وی.اود بچې اخستل به جائز نه وی.

ثُمَّ قِيلَ: يَدْخُلُ الْوَلَدُ فِي الْقَضَاءِ بِالْأُمِّ تَبَعًا، وَقِيلَ يُشْتَرَطُ الْقَضَاءُ بِالْوَلَدِ[1] بیا وئیلی شوی دی.چه د بچې لپاره د قضاء حکم شرط دې وَإِلَيْهِ تُشِيرُ الْمَسَائِلُ، او هم دې قول اړخ ته د مبسوط مسائل اشاره کوی فَإِنَّ الْقَاضِيَ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِالزَّوَائِدِ. که

[1] القول الراجح هو هذا قول صاحب القيل يعنى القول الثانى كذا فى فتح القدير (۱۸۳۱۶) والعناية على هامش الفتح (۱۸۲۱۶) وتبيين الحقائق (۱۰۰۱٤) والدر المختار (۲۱۷۱٤) نقلاً عن القول الراجح (۶۸۱۲)-

قاضی ته د زواندو علم نه وی قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا تَدْخُلُ الزَّوَائِدُ فِي الْحُكْمِ نو امام محمد رحمه الله فرمائی، چه زواند به دقضاء په حکم کي نه داخلیږی.

تشریح:- په دیګ عبارت سره یو اختلاف اړخ ته اشاره ده. اختلاف دادې، چه د مدعی بینه پیش کاوه نه روسته چې کله قاضی د وینځې په اړه کې فیصله اوکړله، چه دا وینځه د مدعی یعنی د مستحق ده. نو آیا ددې بچې به د خپلې مور تابع جوړیږی. اوپه حکم قضاء کي به داخلیږی. اوکه د بچی لپاره جلا فیصله صادر کول شرط دی. نود بعض حضرات مشائخو قول دادې، چه بچې به دمور تابع وی. اوپه حکم قضاءکي به داخل وی. ددې لپاره د جدافیصلې کاوه اړتیا نشته.

او بعض مشائخ حضرات وائی، چه د بچی لپاره مستقل جلا حکم قضاء شرط دې. او هم دې اړخ ته د مبسوط مسائل اشاره کوی. که قاضی ته د زواندو علم نه وی. نو امام محمد رحمه الله فرمائی، چه په حکم قضاء کي به زوائد داخل نه وی.

فَكَذَا الْوَلَدُ إِذَا كَانَ فِي يَدِ غَيْرِهِ اوهم دغه ډول بچې که د بل په قبضه کي وی لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ بِالْأُمِّ تَبَعًا نود مور تابع به د قضاء په حکم کي نه داخلیږی.

تشریح:- دغه ډول که بچې د مستحق نه علاوه د بل کس په قبضه کي وی. او هغه غالب وی. اوقاضی د مستحق لپاره د وینځې فیصله ورکړې وی. نو په دې فیصله کي به بچې د مور تابع نه وی. اونه به داخلیږی. ددې دوارو مسئلو نه ښکاره کیږی، چه بچې د خپلې مور نه تابع کیږی. او په حکم قضاء کي نه داخلیږی. بلکه د بچی لپاره مستقل د قاضی حکم ضروری دې.

### د غلام اخستلو نه روسته ددې آزاد ختلو مسئله

قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا اوکه چا یو غلام واخستلو فَإِذَا هُوَ حُرٌّ بیا ثابته شوه، چه دې آزاد دې وَقَدْ قَالَ الْعَبْدُ لِلْمُشْتَرِي اشْتَرِنِي فَإِنِّي عَبْدٌ لَهُ حالانکه ده مشتری ته اوونیل، چه ته ما واخله. زه ددې بائع غلام یم.

تشریح:- دلته یوه مسئله دا ده چې یوسړی بل سړی ته اوونیل، چه ته ما واخله زه غلام یم. دې سړی دده دحکم مطابق دا واخستلو. بیا ثابته شوه، چه کوم ئې د غلام په خیال اخستې وو. هغه غلام نه دې. بلکه آزاد دې.

فَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ حَاضِرًا نو که بائع موجود وی أَوْ غَائِبًا غَيْبَةً یا په داسې طریقه غائب وی مَعْرُوفَةً چې دده پته معلوم وی لَمْ يَكُنْ عَلَى الْعَبْدِ شَيْءٌ نو په غلام به هیڅ لازم نه وی.

تشریح:- نوکه بائع حاضر وی. یا په داسې طریقه غائب وی، چه د کور ئې معلوم وی. نو په غلام به هیڅ لازم نه وی. بلکه مشتری به خپل ثمن د خپل بائع نه واپس اخلی. ځکه چې د مشتری نه ثمن بائع اخستې وو. ځکه به ئې د بائع نه واپس اخلی.

وَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ او که بائع په داسې طریقه غائب وی لَا يُدْرَى چې دده پته معلوم نه وی أَيْنَ هُوَ چې کوم خائې دې رَجَعَ الْمُشْتَرِي عَلَى الْعَبْدِ نو مشتری به غلام ته رجوع کوی وَرَجَعَ هُوَ عَلَى الْبَائِعِ او غلام به بائع ته رجوع کوی.

حل اللغة: ① غیبة -غائب \ غیرحاضر- ② معروفة-معلوم- ③ لایدری-معلومه نه وی- ④ رجع -واپس به اخلی

تشریح:- اوکه بائع په داسې طریقه غائب وی، چه دده د اوسیدوخائې معلوم نه وی، چه کوم خائې اوسیږی. نو مشتری به خپل ثمن د هغه سړی نه واپس اخلی. کوم چې ده دغلام په خیال اخستې وو. بیا به ئې هغه د بائع نه واپس اخلی.

وَإِنِ ارْتَهَنَ عَبْدًا مُقِرًّا بِالْعُبُودِيَّةِ اوکه داسې غلام ئې رهن کیخودلو، چه دې د خپل غلام کیدلو اقرار کوی فَوَجَدَهُ حُرًّا بیا مرتهن داې آزاد اوموندلو لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ[1] نو مرتهن په هیڅ حال کي د غلام نه څه هم نشی

[1] القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في الدرالمختار (۲۲۱\۱٤) نقلاً عن القول الراجح (۲\٦٨)۔



اخستلې.

تشریح:- دویمه مسئله داده، چه یوکس د بل کس سره داسې غلام په رهن کي کیخودلو، چه دې د خپل غلام کیدلو اقرار کوی. بیا مرتهن ته معلومه شوه، چه دا غلام نه دې. بلکه آزاد دې. نو مرتهن ته به دې غلام باندې په هیڅ صورت کي هم د رجوع کاوه اختیار نه وی. که راهن حاضروی. او که په داسې طریقه غائب وی، چه دده داوسیدلو خائې معلوم نه وی، چه کوم خائې اوسیږی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او د ابویوسف رحمه الله نه روایت دې أَنَّهُ لَا يَرْجِعُ فِيهِمَا چې د غلام نه دواړو صورتونوکي واپس نشی اخستې.

تشریح:- دامام ابویوسف رحمه الله نه روایت دې، چه لکه څنګه د رهن په صورت کي مرتهن ته په غلام باندې د رجوع کاوه اختیار نشته. یعنی په بیع او رهن دواړو صورتونوکی غلام باندې رجوع نشی کولې.

لِأَنَّ الرُّجُوعَ بِالْمُعَاوَضَةِ ځکه چې د غلام نه واپس اخستل، دمعاوضه په وجه وی أَوْ بِالْكَفَالَةِ یا د کفاله په وجه وی وَالْمَوْجُودُ لَيْسَ إِلَّا الْإِخْبَارَ كَاذِبًا او دلته کي صرف د دروغو خبر موجود دې.

حل اللغة: ① الاخبار -خبر ورکول- ② الکذب-دروغ- ③ الاجنبی-دریم ګړې- ④ شرع -شروع کړې ده

تشریح:- د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې، چه د ثمن واپس اخستلو اختیار د عقدمعاوضه په وجه وی. یا د کفاله په وجه وی. حالانکه د غلام د اړخه نه معاوضه شته. اونه کفاله شته. معاوضه خوځکه نشته، چه غلام مشتری سره نه څه معامله کړې ده. اونه ئې دده نه څه مال اخستې دې. او کفاله ځکه نشته، چه غلام د بائع د اړخه د مشتری لپاره د ثمن کفیل شوې نه دې. نوهر کله چې د غلام د اړخه نه معاوضه شته. اونه کفاله شته. بلکه هسې یو د دروغو خبر دې. یعنی دده دغلام کیدلو اقرار کول یو دروغژن خبر دې. نو غلام به د ثمن ضامن هم نه وی. او هرکله چې ضامن نشو. نو دده څخه به د واپس اخستلو اختیار هم نه وی.

فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا قَالَ الْأَجْنَبِيُّ ذَلِكَ لکه چې اجنبی دا خبره اوکړله أَوْ قَالَ الْعَبْدُ ارْتَهِنِّي فَإِنِّي عَبْدٌ یا غلام اوونیل، چه ما رهن کیږده. زه غلام یم وَهِيَ الْمَسْأَلَةُ الثَّانِيَةُ او هم دا دویمه مسئله ده.

تشریح:- اودا داسې شوه. لکه چې یو اجنبی (غیرکس) اوونیل، چه دا غلام دې، دا واخله. مشتری ددې اجنبی کس په وینا باندې دا واخستلو. بیا معلومه شوه، چه دا غلام نه دې. بلکه آزاد دې. نو په اجنبی به هیڅ لازم نه وی. نوهم دغه ډول که پخپله غلام اوونیل، چه زه غلام یم ما واخله. بیا معلومه شوه، چه دې آزاد دې. نومشتری ته به د غلام نه د ثمن واپس اخستلو اختیار نه وی. حضرت امام ابویوسف رحمه الله د بیع صورت د رهن په صورت باندې قیاس کوی. یعنی لکه څنګه چې د رهن په صورت کي مرتهن ته په غلام باندې د رجوع کاوه اختیار نه وی. دغه ډول د بیع په صورت کی هم مشتری ته د غلام نه د ثمن واپس اخستلو اختیار نه وی.

وَلَهُمَا او طرفینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّ الْمُشْتَرِيَ شَرَعَ فِي الشِّرَاءِ مُعْتَمِدًا عَلَى أَمْرِهِ وَإِقْرَارِهِ أَنِّي عَبْدٌ، چې مشتری دده په وینلو او اقرار کاوه باندې، چې زه غلام یم. اعتماد اوکړو. او اخستل ئې پیل کړل إِذِ الْقَوْلُ لَهُ فِي الْحُرِّيَّةِ ځکه چې د آزادئ په اړه کي دده قول معتبر دې فَيُجْعَلُ الْعَبْدُ بِالْأَمْرِ بِالشِّرَاءِ ضَامِنًا لِلثَّمَنِ لَهُ نود غلام د اخستلو د حکم ورکاوه په وجه به د مشتری د ثمن ضامن ګرځولې شی عِنْدَ تَعَذُّرِ رُجُوعِهِ عَلَى الْبَائِعِ دَفْعًا لِلْغُرُورِ وَالضَّرَرِ، لکه چې د مشتری بائع ته رجوع کول متعذر وی، چه د مشتری نه ضرر او دهوکه لرې شی وَلَا تَعَذُّرَ إِلَّا فِيمَا لَا يُعْرَفُ مَكَانُهُ اوهیڅ عذر نشته. مګر په دې صورت کي چې د بائع د اوسیدلو خائې معلوم نه وی.

حل اللغة: ① الشراء-اخستل- ② ضامن-د ثمن ذمه وار- ③ الغرور-دهوکه- ④ تعذر-مشکل شو

تشریح:- د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې چه مشتری هم دده په ونیلو او په اقرار کاوه باندې،، چه زه غلام یم،، اعتماد
اوکړلو اود اخستلو اراده ئې کړې وه. ځکه چې په آزاد کیدلو به هم دده قول معتبر وو. نوچونکه غلام مشتری ته د
اخستلو حکم ورکړلو په دې وجه په دې صورت کې چې کله د بائع نه د ثمن واپس اخستل متعذر وی.نود امکان
په اندازه د مشتری نه ضرر او دهوکه لرې کاوه لپاره به غلام د مشتری د ثمن ضامن ګرځولې شی.اود بائع نه ثمن
واپس اخستل په هغه صورت کې متعذر دی.چه کله د بائع کور معلوم نه وی.نو ثابته شوه.چه هرکله چې د بائع
کور معلوم نه وی.چه کوم ځائي دې.نو مشتری به ددې غلام نه اخلی.چه خپل ځان ئې غلام جوړ کړې وو.او دهوکه
ئې ورکړې ده.ځکه چې د دهوکه ور کاوه په وجه دا غلام د مشتری د ثمن ضامن دې.

والبیع عقد معاوضة او بیع عقدمعاوضه ده فأمكن أن يجعل الآمر به ضامنا للسلامة په دې وجه ددې حکم ورکونکې به د
مبیع د سلامتیا ضامن ګرځولې شی كما هو موجبه لکه چې دې ددې موجب دې.

حل اللغة: ① يجعل-ګرځولې شی-② امكن-ممکن ده-③ السلامة-بې عیبه کیدل-⑤ الاستیفاء-پوره حاصلول

تشریح:- په دې عبارت سره د ابویوسف رحمه الله د دلیل ځواب ورکوی حاصل د ځواب دادې.چه حضرت امام
ابویوسف رحمه الله فرمائیلی وو.چه په بیع او رهن کې هیڅ توپیر نشته.نو لکه څنګه چې د رهن په صورت کې مرتهن ته
د غلام نه د مال واپس اخستلو اختیار نشته.دغه ډول د بیع په صورت کې به هم مشتری ته د غلام نه د ثمن واپس
اخستلو اختیار نه وی.موږ وایو.چه په بیع او رهن کې ډیر زیات توپیر دې.هغه دا چې بیع عقدمعاوضه ده.اود
عقدمعاوضه موجب دادې.چه مبیع د مشتری لپاره صحیح سالم وی.نوکوم سړې چې مشتری ته د اخستلوحکم
ورکونکې وی.لکه دا سړې چې غلام جوړشوې وو.دې د مبیع سالم کیدلو ضامن جوړولې شی.یعنی مشتری چې په
کوم صفت سره د مبیع مستحق شوې دې.دا سړې به د اخستلو حکم ور کاوه په وجه ددې د سلامتیا ضامن
وی.خوچونکه دا سړې ازاد اوختلو.ځکه به د ثمن ضامن وی.او هرکله چې دا د ثمن ضامن شو.نو بائع ته درجوع
متعذر کیدلو په صورت کې به مشتری هم دده نه خپل ثمن واپس اخلی.

بخلاف الرهن په خلاف د رهن لأنه ليس بمعاوضة ځکه چې دا عقدمعاوضه نه ده بل هو وثيقة لاستيفاء عين حقه بلکه داد
عین حق وصولولو وثیقه ده.

تشریح:- او پاتې شو رهن،نودا عقدمعاوضه نه ده.بلکه د وثوق او اعتماد ذریعه ده.چه مرتهن ته دده عین حق
حاصل شی.یعنی هغه شئ حاصل شی.کوم چې مرتهن راهن له د پور په طور ورکړې دې.

حتى يجوز الرهن ببدل الصرف والمسلم فيه تر دې چې د بدل صرف په عوض اود مسلم فیه په عوض رهن جائز دې فيه مع حرمة
الاستبدال حالانکه استبدال حرام دې فلا يجعل الآمر به ضامنا للسلامة نود رهن حکم ورکونکې به د سلامتیا ضامن
نشی ګرځولې.

تشریح:- هم دا وجه ده.چه د بدل صرف په عوض،اود مسلم فیه په عوض رهن ایښودل جائز دی.حالانکه د قبضه
نه وړاندې د بدل صرف او مسلم فیه په بدله کې څه شئ اخستل حرام دی.

① ددې صورت دادې.چه خالد په حامد باندې لس درهم د لس درهمو په عوض خرڅ کړل.اوخالد لس درهمه حامد
ته ورکړل.خوحامد لس درهمه خالد ته ورنکړل.بلکه د لس درهمو په بدله کې ئې خالد سره څه شئ رهن
کیښودلو.بیا د خالدمرتهن سره دا مرهونه شئ هلاک شو.نودا به ونیلې شی.چه خالد مرتهن خپل حق وصول کړې
دې په دې شرط چې مرهونه شئ دلس درهمو برابر وو.اوکه د شئ مرهونه قیمت د لس درهمو نه زیات وی.نود لس
درهمو نه زیاتی رقم به د مرتهن سره امانت وی.چه ددې به مرتهن ته واپس کول ضروری وی.اوکه د شئ مرهونه
قیمت د لس درهمو نه کم وو.نو مرتهن یعن خالد به د راهن یعنی حامد نه پاته رقم اخلی.

② د مسلم فیه صورت دادې.چه خالد حامد ته د بیع سلم په طریقه سل درهمه ورکړل.او دوې (دوه) منه غنم ئې
مسلم فیه مقرر کړل.بیا حامد یعنی مسلم الیه، خالد یعنی رب السلم سره د مسلم فیه په عوض څه شئ رهن



کیښودلو.بیا مرتهن یعنی د خالد په قبضه کې شئ مرهونه هلاک شو.نوخالد به خپل حق وصول کونکې شمارلې
کیږی.په دې شرط چې شئ مرهونه د مسلم فیه د مالیت برابر وی.لکه څنګه چې په بدل صرف کې معلوم شوی
دی.بهرحال چې کله د بدل صرف په عوض اود مسلم فیه په عوض رهن ایښودل جائز نشو.اوکله چې رهن
عقدمعاوضه نه دې.نود رهن حکم ورکونکې یعنی دا سړې کوم چې غلام جوړشوې وو.د مرهونه د سلامتیا ضامن
نه جوړیږی.په دې وجه فقهاؤ ونیلی دی.که یو کس د بل کس نه د امن لارې په اړه کې
پوښتنه اوکړه.اوده اوونیل.چه فلانئ لاره ډیره د امن ده.په دې سفر اوکړه.پوښتنه کونکی هم دده په خودلی شوی
لاره باندې سفر پیل کړلو.نو په لاره کې غلو دې لوټ کړلو.نودا لاره خودونکې به دده د مال ضامن نه وی.ځکه چې
د لاره خودونکی د اړخه دهوکه په داسې شئ کې موندلې شوې ده.کوم چې عقدمعاوضه نه ده.
بهرحال ثابته شوه.چه په عقدغیرمعاوضه کې دهوکه ورکونکې شئ د سلامتیا ضامن نه وی.او رهن هم چونکه
غیرمعاوضه ده.په دې وجه د رهن ایخودلوحکم ورکونکې یعنی دا سړې کوم چې د غلام کیدلو اقرار کړې
وو.دشئ مرهونه د سلامتیا ضامن نه وی. اوهرکله چې دا غلام د سلامتیا ضامن نشو.نو دده آزادی ثابتیدلو نه
روسته به دده ته مرتهن باندې درجوع کاوه اختیار هم نه وی.

وبخلاف الأجنبي او په خلاف د اجنبی لأنه لا يعبأ بقوله ځکه چې دده په قول باندې اعتبار نشی کیدلې فلا يتحقق الغرور به
دې وجه به دهوکه نه متحقق کیږی.

حل اللغة: الاجنبی-دریم ګړې-الاعباء-پرواه-يتحقق-ثابتیږی-الغرور-دهوکه

تشریح:- دا عبارت د ابویوسف رحمه الله د قیاس ځواب دې.حاصل د ځواب دادې.چه کله اجنبی سړی د یوکس په اړه کې
دا اوونیل.چه دا غلام دې.دا واخله.نو دده په قول به اعتماد نه کیږی.ځکه چې خامخا د لارې تیریدونکی په خبره
باندې اعتماد نه کیږی.اوهرکله چې د اجنبی په خبره باندې اعتماد نه کیږی.نو دده د اړخه دهوکه هم متحقق
نشوه.اوهرکله چې دهوکه متحقق نشوه.نود مبیع غلام آزادی ثابتیدلو نه روسته مشتری لپاره په ده باندې ضمان
هم واجب نه وی.ځکه چې وړاندې تیرشوی دی.چه مبیع غلام د مشتری د ثمن ضامن د مشتری نه دهوکه لرې
کاوه لپاره جوړولې شی.خوکله چې د اجنبی د اړخه دهوکه اونه موندې شوه.نو ددې لرې کاوه لپاره د ثمن ضامن
کیدلو څه سوال پیدا کیږی.ځکه به اجنبی سړې د مشتری د ثمن ضامن نه وی.

ونظير مسألتنا او زموږ ددې مسئلې مثال دادې قول المولى بايعوا عبدي هذا فإني چې مولا (بازاری سوداګرو ته)
اوونیل.چه تاسو زما دې غلام سره اخستل خرڅول کوئ قد أذنت له ما ده ته د تجارت اجازت ورکړې دې ثم ظهر
الاستحقاق بیا په دې غلام باندې د بل کس استحقاق ښکاره شو فإنهم يرجعون عليه بقيمته نو سوداګر خلګ به د
مولا نه دده د قیمت برابر خپل مال واپس اخلی.

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه دمتن د مسئلې مثال دا مسئله ده.چه مولا د بازار سوداګروته اوونیل.چه
تاسو خلګ زما لپاره دې غلام سره اخستل خرڅول کوئ.ځکه چې ماده ته د تجارت اجازت ورکړې دې.بیا معلومه
شوه.چه دا غلام نه دې.بلکه آزاد دې.په داسې حال کې چې د خلګو په ده باندې قرضه ده.نو قرضخواه (پور
غوښتونکې) سوداګر به خپله قرضه د مولا نه اخلی.ځکه چې هم ده دوی ته دهوکه ورکړې ده.نود دهوکه ور کاوه
په وجه به مولا د پور غوښتونکو ضامن وی.خودا خیال به ساتلې شی.چه مولا به ددې غلام د قیمت په اندازه
ضامن وی.ددې نه د زیات ضامن به نه وی.

### د امام صاحب رحمه الله په مسلک باندې اشکال

ثم في وضع المسألة ضرب إشكال على قول أبي حنيفة رحمه الله بیا د ذکرشوې مسئلې په صورت کې د امام ابوحنیفه رحمه الله
په قول باندې یو ډول اشکال دې لأن الدعوى شرط في حرية العبد عنده، ځکه چې د امام صاحب رحمه الله په نیز دغلام په
آزادئ کې دعوه کول شرط دی والتناقض يفسد الدعوى او تناقض دعوه فاسدوی.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي چه دامام ابوحنيفه رحمه الله په قول باندې د متن په مسئله کې يو ډول اشکال نه مخکې دا په ذهن کې کېنوئ چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د غلام آزادي ثابتولو لپاره د آزادئ دعوه کول شرط دی.يعنی مخکې غلام د آزادئ مدعی وی.بيا به په دې باندې شهادت اوريدلې شی.دويمه خبره داده.چه په دعوه کې تناقض دعوه ساقطوی.

اشکال:د اشکال وضاحت دادې.چه کوم غلام مشتری نه دا اووئيل.چه زه ددې بائع غلام يم.ته ما واخله.او بيا ئې مشتری سره دعوه اوکړله.چه زه آزاد يم.او په آزاديدلو باندې ئې ګواه قائم کړل.نو ګويا غلام اول د غلام کيدلو دعوه اوکړله.بيا ئې دآزاد کيدلو دعوه اوکړله.اودا صريح تناقض دې.اودکوم سړی په دعوه کې چې تناقض وی.هغه دعوه صحيح نه وی.اوهرکله چې دغلام د آزادئ دعوه صحيح نشوه.نو دده ګواه به هم نه قبليږی.اوهرکله چې د آزادئ ګواه قبول نشو.نود غلام آزادی به هم نه ثابتيږی.اوهرکله چې دغلام آزادی ثابت نشوه.نود مشتری لپاره ثمن واپس اخستلو څه سوال پيدا کيږی.بهرحال د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مسئلې صورت نه جوړيږی.

وَقِيلَ إِذَا كَانَ الْوَضْعُ فِي حُرِّيَّةِ الْأَصْلِ او وئيلی شوی دی.که په اصلی آزادئ کې مسئله فرض کړې شوې ده فَالدَّعْوَى فِيهَا لَيْسَ بِشَرْطٍ عِنْدَهُ نود امام صاحب رحمه الله په نيز په دې کې دعوه شرط نه ده لِتَضَمُّنِهِ تَحْرِيمَ فَرْجِ الْأُمِّ ځکه چې دا آزادی د مور شرمګاه حراموله ته متضمن ده.

حل اللغة:① الوضع-تعلق د مسئلې-② تحريم-حرامول-③ فرج-شرمګاه-④ الام-مور

تشریح:- صاحب دهدايه رحمه الله د دې يو ځواب دا ورکوی چې د ماتن په قول ﴿فاذا هو حر....﴾ کې د حريت نه که اصلی او مورزاده (پيدائشی) حريت او آزادی مراد ده.نود عامة المشائخ قول دادې.چه دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دحريت اصليه ثابتولو لپاره دعوه شرط نه ده.ځکه چې هرکله يوسړې اصلاً آزاد دې.نو ددې مور د هيڅ چا مملوکه نه ده.اوهرکله چې دده مور د هيڅ چا مملوکه نه ده.نو دده دمور فرج او شرمګاه په هغه کس حرام دې.ځوک چې دا دعوه کوی.چه داده مملوکه ده.او فرج او شرمګاه حرام کيدل د حقوق الله ځنې دی.اود حقوق الله ثابتولو لپاره دعوه شرط نه وی.بلکه د دعوه نه بغير د ګواهانو ګواهی قبلولې شی.حاصل داشو.چه اصل آزادی دده دمور فرج حراميدلو ته متضمن دې.اود حرمت فرج لپاره چونکه دعوه شرط نه ده.په دې وجه اصلی آزادی کوم چې حرمت فرج ته متضمن ده.ددې لپاره به هم دعوه شرط نه وی.او هرکله چې د اصلی آزاد لپاره دعوه شرط نه ده.نوکوم کس چې ﴿اشتری فانی عبد﴾ وئيلی وو.دده په کلام کې به هم تناقض نه لازميږی.

وَقِيلَ او بعضو وئيلی دی هُوَ شَرْطٌ [1] لَكِنَّ التَّنَاقُضَ غَيْرُ مَانِعٍ چې دعوه شرط ده.خو تناقض مانع نه دې لِخَفَاءِ الْعُلُوقِ ځکه چې د نطفې علوق پټ دې.

حل اللغة ① التناقض-يوبل تضاد-② مانع-منع کونکې-③ الخفاء-پټوالې-④ العلوق-په رحم کې د نطفې ځائې نيول

تشریح:- اود بعض مشائخو قول دادې.چه د اصل آزادی ثابتولو لپاره هم دعوه شرط ده.خو اوس به تناقض واقع کيږی.ځکه چې مخکې ده د ځپل غلام کيدلو اقرار کړې وو.او اوس د آزادئ دعوه کوی.نو ددې ځواب دادې.چه دلته کې تناقض د دعوه صحيح کيدلو لپاره مانع نه دې بلکه معاف دې.ځکه چې د نطفې قرار مونډل يو پټ شئ دې.په دې طريقه چې دې د دارحرب نه په ماشوموالی کې راوستلې شوې وی.اوده ته د ځپل مور يا پلار د آزادئ حال معلوم نه وی.نودې د ځپل غلام کيدلو اقرار کوی.بيا روسته ده ته معلومه شوه.چه زما مور پلار آزاد وو.نوده دځپل آزادکيدلو دعوه اوکړله.بهرحال د علوق او نطفه قرار مونډل يوپټ شئ دې.اوکوم شئ چې پټ وی.په هغې کې تناقض معاف وی.په دې وجه به دلته کې هم تناقض معاف وی.

[1] القول الراجح هو هذا قول (بدعوى العبدالشرط) كذا فى فتح القدير(٨٨١٣) نقلاً عن القول الراجح(٦٩١٢)-



وَإِنْ كَانَ الْوَضْعُ فِي الْإِعْتَاقِ اوکه ذکرشوې مسئله په آزادولوکې فرض کړې شوې وی فَالتَّنَاقُضُ لَا يَمْنَعُ نو تناقض مانع نه دې لِاسْتِبْدَادِ الْمَوْلَى بِهِ ځکه چې په آزادولوکې مولا پخپله مستقل دې.

حل اللغة:① الاعتاق-آزادول-② الاستبداد-مستقل کيدل-③ المختلعة-خلع اخستونکې-④ قبل-وړاندې

تشریح:- د دغه اشکال نه دوهم ځواب دا ورکوی چې د ماتن قول ﴿فاذا هو حر﴾ نه مراد هغه آزادی وی.کوم چې د مولا آزادولو سره حاصل شوې وی.نو په دې صورت کې به هم تناقض د دعوه د صحت لپاره مانع نه وی.ځکه چې مولا د ځپل غلام په آزادولوکې مستقل وی.نو کيدای شی.چه کله مولا دې آزاد کړې وی.نو څه خلګ خبر وی.او پخپله غلام خبر نه وی.تردې چې کله مولا دې خرڅ کړلو.نوده د ځپلې لاعلمئ نه اقرار اوکړلو.چه زه غلام يم.بيائې چې کله د خلګو نه پوښتنه اوکړه .نوده په ځپله آزادئ باندې ګواهان قائم کړل.اودعوه ئې اوکړله.چه زه آزاد شوې يم.

فَصَارَ نودا داسې شوه كَالْمُخْتَلِعَةِ تُقِيمُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ قَبْلَ الْخُلْعِ لکه خلع اخستونکې ښځه د خلع نه وړاندې په درې طلاقو باندې ګواه قائم کړی وَالْمُكَاتَبِ يُقِيمُهَا عَلَى الْإِعْتَاقِ قَبْلَ الْكِتَابَةِ او مکاتب د کتابت نه وړاندې آزادولو باندې ګواهان قائم کړی.

تشریح:- دا داسې شوه.لکه مثلاً يوې ښځې ځپل ميړه سره خلع اوکړله.او روسته ئې ګواهان قائم کړل.چه زما ميړه ماسره د خلع کاوه نه وړاندې ماله درې طلاقه راکړې دی.نو ددې داګواهان به قبلولې شی.او تناقض به نه وی.ځکه چې هر ميړه په طلاق ورکاوه کې مستقل وی. کيدای شی.چه د خلع نه وړاندې ښځې ته د طلاق علم نه وی.او روسته علم شوې وی.دغه ډول غلام ځپل مولا سره مکاتبت اوکړلو.او بيا ده ګواهان قائم کړل.چه زما مولا د مکاتب کاوه نه وړاندې زه آزاد کړې يم.نوده پخپلو آزادولو باندې ګواهان قائم کړل.نوهم دغه ډول د متن په مسئله کې چې کله يوسړی مشتری ته د غلام کيدلو اقرار اوکړلو.نو دې وئيلې شی.چه ماته دغه وخت پورې د مولا آزادول معلوم نه وو.نوما دغلام کيدلو اقرار اوکړلو.خوچه کله روسته معلوم شو.نود آزادئ دعوه مې اوکړله.نو په دې کې هيڅ قسمه څه تناقض نشته.

**په کورکښې د نامعلومه حق دعوه کول.اوفيصله کولونه روسته بل ځول ددې مستحق کيدلو مسئله**

قَالَ فرمائی وَمَنِ ادَّعَى حَقًّا فِي دَارٍ اوکه يوکس په يوکور کې د يو حق دعوه اوکړله مَعْنَاهُ حَقًّا مَجْهُولًا يعنی د مجهول حق دعوه ئې اوکړله فَصَالَحَهُ الَّذِي فِي يَدِهِ عَلَى مِائَةِ دِرْهَمٍ بيا قابض مدعی سره په سل درهمو باندې صلح اوکړله.

تشریح:- مسئله داده.چه يوکور د يوسړی په قبضه کې دې. دوهم کس په دې کورکې د ځپل نامعلومه حق دعوه اوکړله.او قابض يعنی مدعی عليه انکار اوکړلو.بيا قابض د مدعی سره په سل درهم باندې صلح اوکړله.يعنی قابض سل درهمه مدعی ته ورکړل.اودده نامعلومه حق ئې واخستلو.

فَاسْتُحِقَّتِ الدَّارُ إِلَّا ذِرَاعًا بيا په دې کورکې د يوګز نه د علاوه مستحق شو لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ مِنْهَا نو قابض د مدعی نه هيڅ مال واپس نشی اخستلې.

تشریح:- بيا يو دريم کس علاوه د يوګز نه په پوره کور باندې ځپل استحقاق ثابت کړلو.نو قابض يعنی مدعی عليه ته د مدعی نه د هيڅ مال واپس اخستلو اختيار نه وی.

لِأَنَّ لِلْمُدَّعِي أَنْ يَقُولَ ځکه چې مدعی لپاره ددې وئيلو حق دې دَعْوَايَ فِي هَذَا الْبَاقِي چې زما دعوه هم په دې يوګز کې وه.

تشریح:- دليل دا دې چې مدعی دا وئيلې شی.چه زما دعوه هم په دې يوګز کې وه.چه ددې په عوض کې ما سل درهمه اخستې دی.

**په پوره برخه دعوه کول او صلح کولونه روسته د مستحق کېدلو مسئله**

قَالَ فرمايي وَإِنْ ادَّعَاهَا كُلَّهَا اوکه مدعي دپوره کور دعوه اوکړله فَصَالَحَهُ عَلٰى مِائَةِ دِرْهَمٍ بيا قابض په سل درهمه باندې دده سره صلح اوکړله فَاسْتُحِقَّ مِنْهَا شَيْءٌ بيا د کور يوه برخه مستحق شوه رَجَعَ بِحِسَابِهِ نو قابض به د مدعي نه ددې په حساب واپس اخلي.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې چه د يوسړي په قبضه کې يوکور دې. دوهم سړي په پوره کورباندې دعوه اوکړله نو قابض د مدعي سره په سل درهمه باندې صلح اوکړله. يعنې د پوره مکان په عوض نې سل درهمه ورکړل. بيا ددې کور په يوه برخه باندې يو دريم سړي خپل استحقاق ثابت کړلو. مثلاً نيم کور نې په استحقاق ثابتولوکې واخستلو. نو په دې صورت کې به قابض يعنې مدعي عليه، د مدعي نه د سل درهمو نيمه يعنې پنځوس درهمه واپس اخلي.

لِأَنَّ التَّوْفِيقَ غَيْرُ مُمْكِنٍ ځکه چې توفيق ناممکن دې فَوَجَبَ الرُّجُوعُ بِبَدَلِهِ عِنْدَ فَوَاتِ سَلَامَةِ الْمُبْدَلِ نود مبدل دسلامتيا فوت کېدلو په وخت ددې د بدل واپس اخستل واجب شو.

**حل اللغة:** ① **التوفيق**-موافقت-② **الرجوع** -واپس کېدل-③ **فوا**-فوت کېدل-④ **السلامة**-بې عيبه کېدل

**تشريح:-** دليل دا دې چې د استحقاق ثابتېدلو نه روسته معلومه شوه. چه مدعي دا پنځوس درهمه د څه حق نه بغير اخستي دي.

وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى اودا مسئله په دې خبره باندې دليل دې أَنَّ الصُّلْحَ عَنِ الْمَجْهُولِ عَلٰى مَعْلُومٍ جَائِزٌ چې د مجهول شئ په اړه کې معلوم مال باندې صلح کول جائز دی.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه دا مسئله په دې خبره باندې دليل دې. چه د شئ مجهول په اړه کې په مال معلوم باندې فيصله کول جائز دی.

لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيمَا يَسْقُطُ ځکه چې جهالت په هغه شئ کې ساقطيږي لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ. کوم چې مفضي الى المنازعه نه وي. وَاللّٰهُ تَعَالٰى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

**حل اللغة:** ① **يسقط**-ساقطوي-② **تفضى**-مفضي کېږي-③ **المنازعة**-جګړه-④ **الصواب**-حقيقت حال

**تشريح:-** دليل دا دې چې جهالت په داسې څيزونوکې جګړه نه پيدا کوي. کوم چې ساقطيږي. اوکوم جهالت چې جګړه نه پيدا کوي. هغه د عدم جواز سبب نه جوړيږي. او دلته کې هم دا خبره ده. ځکه چې کله مدعي په کورکې د مجهول حق دعوه اوکړله. او قابض ده سره په سل درهمه باندې فيصله اوکړله. نوګويا مدعي د سل درهمو په عوض خپل حق ساقط کړلو. او په اسقاطاتو کې جهالت مفضي الى المنازعه نه وي. اوکوم جهالت چې مفضي الى المنازعه نه وي. هغه د عدم جواز سبب هم نه جوړيږي. په دې وجه په مال معلوم باندې د مجهول شئ په اړه کې صلح کول به هم جائز وي. دويمه دا مسئله په دې خبره باندې دلالت کوي. چه د صلح د صحت لپاره د دعوه صحت شرط نه دې. ځکه چې په کورکې د مجهول حق دعوه د جهالت په وجه صحيح نه ده. حالانکه صلح صحيح ده. نو معلومه شوه چه د صلح د صحت لپاره د دعوه صحت شرط نه دې. والله اعلم.

## فَصْلٌ فِي بَيْعِ الْفُضُولِيِّ

ژباړه (دا) فصل د بيع فضولي (په بيان کې) دې.

**تشريح:-** په دې فصل او په ،،باب الاستحقاق،، کې مناسبت ښکاره دې. ځکه چې د فضولي بيع د استحقاق په صورتونوکې يو صورت دې. ځکه چې کله مستحق دا وائي. چه دا شئ زما ملك دې. اوچا چې په تا خرڅ کړې دې زما د اجازت نه بغير نې خرڅ کړې دې. بعينه هم دا د فضولي بيع ده.



فضولي، په ضمه د فاء سره دې. د فقهاؤ په اصطلاح کې فضولي هغه کس دې. چه نه اصيل وي. نه وکيل وي. اونه وصي وي. (يعنې چا ورته دڅه څيزخرڅول نه وي سپارلي. اوهسې لګه د مچ په غوړوکې رادانګي. اويوڅيزخرڅوي) نه واني. صاحب د عنايه رحمه الله فرمائي. چه د فاء فتحه غلط ده.

**د بيع فضولي حکم د غير مملوکه څيز د مالك د اجازت نه بغير خرڅولو مسئله**

قَالَ فرمايي وَمَنْ بَاعَ مِلْكَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ که يوکس د بل ملك دده د حکم نه بغير خرڅ کړو فَالْمَالِكُ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ أَجَازَ الْبَيْعَ نو مالك ته اختيار دې. که غواړي. د بيع اجازت دې ورکړي وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ اوکه غواړي. دادې فسخ کړي.

**حل اللغة:** ① **الخيار**-اختيار-② **اجاز**-اجازت ورکړو-③ **الفسخ**-فسخ کېدل

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې. که يوکس د بل مملوکه شئ د مالك د اجازت نه بغير خرڅ کړلو. نو مالك ته به اختيار وي. که غواړي. د بيع اجازت دې ورکړي. اوکه غواړي. نو فسخ دې کړي. هم دا د امام مالك رحمه الله مذهب دې. اوهم دا د امام احمد رحمه الله يو روايت دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا يَنْعَقِدُ او امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دي. چه د فضولي بيع نه منعقد کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَصْدُرْ عَنْ وِلَايَةٍ شَرْعِيَّةٍ ځکه چې دا بيع په هيڅ شرعي ولايت سره نه ده صادر شوې.

**تشريح:-** او امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه د فضولي بيع بالکل نه منعقد کيږي. د امام شافعي رحمه الله په نيز د فضولي واړه تصرفات باطل وي. دامام احمد رحمه الله يو روايت هم دا دې.

لِأَنَّهَا بِالْمِلْكِ أَوْ بِإِذْنِ الْمَالِكِ ځکه چې شرعي ولايت په ملك سره کيږي. ياد مالك په اجازت سره کيږي. وَقَدْ فُقِدَا، وَلَا انْعِقَادَ إِلَّا بِالْقُدْرَةِ الشَّرْعِيَّةِ حالانکه دا دواړه نشته. اود شرعي قدرت نه بغير انعقاد نه کيږي.

**حل اللغة:** ① **الاذن**-اجازت-② **فقدان**-غيرموجود-③ **صدر**-صادرشو-④ **التخيير**-اختيارورکول

**تشريح:-** د امام شافعي رحمه الله دليل دادې. چه د بل د مملوکه څيزبيع په شرعي ولايت سره نه صادرکيږي. ځکه چې شرعي ولايت يا خو په مالك کېدلو سره ثابتيږي. اويا د مالك په اجازت سره ثابتيږي. حالانکه دلته کې دواړه موجود نه دی. ځکه چې فضولي نه پخپله د بيع مالك دې. اونه ده ته دمالك اجازت حاصل دې. بهرحال د فضولي بيع په شرعي ولايت سره صادرنشوه. اوکوم شئ چې په شرعي ولايت سره صادر نشي. هغه نه منعقد کيږي. ځکه چې د ولايت شرعيه اود قدرت شرعيه نه بغير انعقاد نه کيږي. ځکه به د فضولي بيع هم نه منعقد کيږي.

وَلَنَا او زمونږ دليل دادې أَنَّهُ تَصَرُّفُ تَمْلِيكٍ وَقَدْ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ چې بيع د مالك کاوه تصرف دې. اودا دخپل محل نه د خپل اهل نه صادر شوې دې فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِانْعِقَادِهِ، په دې وجه ددې د انعقاد قائل کېدل واجب شو إِذْ لَا ضَرَرَ فِيهِ لِلْمَالِكِ مَعَ تَخْيِيرِهِ ځکه چې مالك ته د اختيار ور کاوه په وجه دده لپاره په دې کې څه ضرر نشته.

**تشريح:-** زمونږ دليل دادې. چه بيع د مالك کاوه تصرف دې. يعنې د بيع په ذريعه مشتري د مبيع مالك کيږي. او بائع د ثمن مالك کولې شی. اودا تصرف ددې داهل اوددې په محل کې صادرشوې دې. اهل خو ځکه دې. چه فضولي عاقل بالغ دې. اومحل ځکه دې. چه د بيع محل مال متقوم کېدل دی. اود فضولي ملك معدوم کېدلو سره د مبيع ماليت او تقوم معدوم کېدل نه لازميږي. نو هرکله چې تصرف کونکې يعنې فضولي د تصرف اهل هم دې. اوپه کوم محل کې چې تصرف شوې دې. يعنې مبيع دا د تصرف محل هم دې. نود بيع منعقد کېدلو کې څه اشکال دې. اوپه دې انعقادبيع کې په مالك او عاقدينو کې د چاضرر هم نشته. د مالك ضرر خوځکه نشته. چه مالك ته د قبلولو اود نه قبلولو اختيار دې. يعنې که مالك ضرر محسوس کړي. نو بيع دې فسخ کړي. اوکه نفع محسوس کړي. نو اجازت دې ورکړي.

بَلْ فِيهِ نَفْعُهُ بلکه په دې کې دمالك نفع ده حَيْثُ يَكْفِي مُؤْنَةَ طَلَبِ الْمُشْتَرِي وَقَرَارَ الثَّمَنِ وَغَيْرِهِ چې ده ته د مشتري لټون کاوه مشقت اود ثمن وغيره مقرر کاوه تکليف نه کفايت دې.

تشريح:- بلكه مالك ته يو ډول نفع ده.اوهغه داچه مالك د خپل مملوك شئ خرڅولو لپاره د مشتري لټون كاوه تكليف نه خلاص شو.اوهم دغه ډول د ثمن متعين كاوه د محنت نه بچ شو.اود بيع نه دعاجز كيدلو په صورت كي د وكيل لټون كاوه نه خلاص شو.

وَفِيهِ نَفْعُ الْعَاقِدِ او په دې كي د عاقد هم نفع ده لِصَوْنِ كَلَامِهِ عَنِ الْإِلْغَاءِ ځكه چې دده كلام د لغو كيدلو نه بچ شو.

حل اللغة: ① صون-حفاظت-② الالغاء-لغو كيدل-③ الاذن-اجازت-④ النافع-ګټور

تشريح:- اود بيع په انعقاد كي د فضولي نفع داده.چه دده كلام د لغوكيدلو نه بچ شو.ګنى د بيع نه منعقد كيدلو په صورت كي دده كلام لغوكيدلو.

وَفِيهِ نَفْعُ الْمُشْتَرِي او په دې كي د مشتري هم نفع ده.

تشريح:- اود مشتري نفع ځكه ده.چه مشتري په رضا اوشوق ددې شئ د اخستلو اقدام كړې دې.كه په دې كي د مشتري څه نفع نه وه.نوده به اقدام نه كولو.

فَثَبَتَ لِلْقُدْرَةِ الشَّرْعِيَّةِ تَحْصِيلًا لِهَذِهِ الْوُجُوهِ نو ددې وجوهاتو حاصلولو په لحاظ شرعي قدرت ثابت شو.

تشريح:- نو ددې منافع حاصلولو لپاره فضولي لپاره قدرت شرعيه او ولايت شرعيه ثابت وي.اوهركله چې د فضولي لپاره قدرت شرعيه ثابت شو.نود فضولي شوې بيع به هم منعقد وي.

كَيْفَ او بيع به ولې نه منعقد كيږي وَإِنَّ الْإِذْنَ ثَابِتٌ دَلَالَةً حالانكه اجازت دلالةً ثابت دي لِأَنَّ الْعَاقِلَ يَأْذَنُ فِي التَّصَرُّفِ النَّافِعِ ځكه چې هر عاقل د خپل نافع تصرف اجازت وركوي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله د امام شافعي رحمه الله په ځواب كي فرمائي.چه ستا دا وئيل.چه ولايت شرعيه په ملك سره ثابتيږي.ياد مالك په اجازت سره ثابتيږي.او دلته كي دواړه خبرې موجود نه دي.غلط دي.ځكه چې د مالك د اړخه اجازت دلالةً ثابت دې.ځكه چې په دې بيع كي د مالك نفع ده.او مالك،،الحمدلله،، عاقل دې.او هرعاقل سړې د نفع بخش تصرف اجازت وركوي.نو ثابته شوه.چه د مالك د اړخه فضولي ته اجازت حاصل دې.اوهركله چې فضولي ته قدرت شرعيه حاصل دې.نودده كړې شوې بيع به هم منعقد وي.

## دغير مملوك څيز دمالك د اجازت نه بغير خرڅولو مسئله

قَالَ فرمايي وَلَهُ الْإِجَازَةُ إِذَا كَانَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ بَاقِيًا ومالك ته د اجازت اختيار هغه وخت پورې حاصل دې.تركومه پورې چې معقود عليه موجود وي وَالْمُتَعَاقِدَانِ بِحَالِهِمَا او عاقدين پخپل حالت وي.

تشريح:- وړاندې تيرشوي دي.كه فضولي د بل مملوكه شئ د مالك داجازته بغيرخرڅ كړلو.نودا به منعقد وي.البته مالك ته به د اجازت ور كاوه او فسخ كاوه اختيار وي.په دې عبارت كي امام ابوالحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه مالك ته داجازت ور كاوه اختيار هغه وخته پورې حاصل وي.چه كومه پورې مبيع موجود وي.او عاقدين يعنى فضولي اومشتري خپل حالت باندې موجود وي.يعنى د مالك په اجازت سره عقد نافذ كيږي.په دې شرط چې د اجازت په وخت مبيع موجود وي.اوبه عاقدينوكي د اهليت نه وړاندې بيع موقوف ده.اود اجازت نه روسته به نافذ وي.

لِأَنَّ الْإِجَازَةَ تَصَرُّفٌ فِي الْعَقْدِ ځكه چې اجازت وركول په عقدكي تصرف دې فَلَا بُدَّ مِنْ قِيَامِهِ په دې وجه دعقد قائميدل ضروري دي وَذَلِكَ بِقِيَامِ الْعَاقِدَيْنِ وَالْمَعْقُودِ عَلَيْهِ اود عقد قيام د عاقدينو او معقودعليه په موجود كيدلو سره كيږي.

تشريح:- هركله چې اجازت وركول په عقدكي تصرف كول دي. نود اجازت په وخت د بيع موجود كيدل ضروري دي.او بيع موجود كيږي.دعاقدينو اود معقود عليه موجوديدلو سره.په دې وجه د اجازت په وخت دعاقدينو اودمعقودعليه موجود كيدل شرط اوګرځولى شو.كه د اجازت په وخت معقود عليه موجود نه وي.ياعاقدين پخپل حالت باندې نه وي.نود مالك اجازت به نافع نه وي.



وَإِذَا أَجَازَ الْمَالِكُ او كله چې مالك د بيع اجازت وركړو كَانَ الثَّمَنُ مَمْلُوكًا لَهُ نو ثمن به د مالك مملوك وي أَمَانَةً فِي يَدِهِ بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيلِ چې دا به فضولي سره د وكيل په مرتبه كي امانت وي.

تشريح:- اوكله چې مالك د بيع اجازت وركړلو.نو ثمن به دمالك مملوك وي.اود وكيل پشان به د فضولي په قبضه كي امانت وي.يعنى وكيل بالبيع كه په ثمن قبضه اوكړي.نوثمن دده سره امانت وي.نوهم دغه ډول به د فضولي سره ثمن امانت وي.

لِأَنَّ الْإِجَازَةَ اللَّاحِقَةَ بِمَنْزِلَةِ الْوَكَالَةِ السَّابِقَةِ ځكه چې لاحق اجازت د تيرشوي وكالت په مرتبه كي وي.

حل اللغة: ① اللاحقة-روستنې-② السابقة-وړاندينې-③ محض-صرف-④ الدفع-لرې كيدل

تشريح:- دليل دا دې چې د فضولي د بيع نه روسته د مالك اجازت وركول داسې دي.لكه د بيع نه وړاندې وكيل بالبيع،اود وكيل په قبضه كي ثمن چونكه امانت وي.د فضولي په قبضه كي به هم امانت وي.د امانت كيدلو فائده داده.كه ثمن د فضولي سره هلاك شو.نو په ده به ضمان واجب نه وي.

وَلِلْفُضُولِيِّ أَنْ يَفْسَخَهُ قَبْلَ الْإِجَازَةِ او فضولي ته د مالك اجازت وركولونه وړاندې د بيع فسخ كاوه اختيار دې

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د مالك د اجازت ور كاوه نه وړاندې كه فضولي بيع فسخ كول اوغواړي.نو فسخ كولې شي.

دَفْعًا لِلْحُقُوقِ عَنْ نَفْسِهِ دخپل ځان نه حقوق لرې كاوه لپاره

تشريح:- دليل دا دې چې د بيع حقوق عاقد اړخ ته واپس كيږي.نو په ذكرشوې مسئله كي چونكه د بيع واړه حقوق او ذمه دارياني فضولي اړخ ته واپس كيږي.په دې نوبه ذكرشوې مسئله كي چونكه د بيع واړه حقوق او ذمه دارياني فضولي اړخ ته واپس كيږي.په دې وجه فضولي د خپل ځان نه حقوق د بيع او ذمه دارياني لرې كاوه لپاره بيع فسخ كولې شي.

بِخِلَافِ الْفُضُولِيِّ فِي النِّكَاحِ په خلاف د فضولي د نكاح لِأَنَّهُ مُعَبِّرٌ مَحْضٌ ځكه چې دې صرف تعبير كونكې وي.

تشريح:- څوك په نكاح كي فضولي وي.نودچا په اجازت چې نكاح موقوف وه.دهغه داجازت نه وړاندې كه فضولي نكاح فسخ كول اوغواړي.نو نشي فسخ كولې.ځكه چې په نكاح كي فضولي صرف معبر او پيغام رسونكې وي.د نكاح حقوق ده اړخ ته نه واپس كيږي.

هَذَا إِذَا دا حكم هغه وخت دې كَانَ الثَّمَنُ دَيْنًا كله چې ثمن دين وي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د مالك د اجازت په وخت د معقودعليه اوعاقدينو موجود كيدل هغه وخت ضروري دي.چه كله ثمن دين وي.يعنى دراهم يا دنانير وي.يا فلوس وي.يا غيرمعين كيلي يا وزني شئ وي.په دې شرط چې ددې واړه اوصاف ئې بيان كړې وي.

فَإِنْ كَانَ عَرَضًا مُعَيَّنًا نوكه ثمن معين سامان وي إِنَّمَا تَصِحُّ الْإِجَازَةُ إِذَا كَانَ الْعَرَضُ بَاقِيًا أَيْضًا نود مالك اجازت به هغه وخت صحيح وي.چه سامان هم موجود وي.

تشريح:- اوكه ثمن څه معين سامان وي.نود اجازت په وخت د معقودعليه اوعاقدينو موجود كيدلو نه علاوه ددې معين سامان موجود كيدل هم ضروري دي.

ثُمَّ الْإِجَازَةُ إِجَازَةُ نَقْدٍ لَا إِجَازَةُ عَقْدٍ بيا ذكرشوې اجازت د نغداجازت دې.د عقد اجازت نه دې حَتَّى يَكُونَ الْعَرَضُ الثَّمَنُ تردې چې كوم سامان ثمن دې مَمْلُوكًا لِلْفُضُولِيِّ هغه به د فضولي مملوك وي.

تشريح:- اوبه دې صورت كي چې دمالك د اړخه كوم اجازت دې.دا ددې خبرې اجازت دې.چه فضولي دمالك په مال كي هغه شئ ادا كړي.كوم ئې چې خرڅ كړې دې.دعقدموقوف اجازت نه دې.ځكه چې په دې صورت كي په فضولي

باندې عقد دمالك د اجازت نه بغير لازم او نافذ شوې دې. تردې چې كوم معين سامان، ثمن مقرر كړې شوې دې. هغه به د فضولي مملوك وي.

**وَعَلَيْهِ مِثْلُ الْمَبِيْعِ** او په فضولي باندې د مبيع مثل واجب دې **اِنْ كَانَ مِثْلِيًّا** كه مبيع مثلي شئ وي **أَوْقِيْمَتُهُ اِنْ لَمْ يَكُنْ مِثْلِيًّا** يا به ددې قيمت واجب وي. كه مبيع مثلي شئ نه وي.

**تشريح:-** اومالك كه د اجازت ور كاوه نه وړاندې مړشو. يا ئې د عين مبيع ور كاوه نه انكار اوكړلو. نوكه مبيع د ذوات الامثال ځنې وي. نو په فضولي به ددې مثل واجب وي. اوكه د ذوات القيم ځنې وي. نود مبيع قيمت به واجب وي.

**لِاَنَّهُ شِرَاءٌ مِنْ وَجْهٍ** ځكه چې دا ،،من وجه،، اخستل دي **وَالشِّرَاءُ لَايَتَوَقَّفُ عَلَى الْاِجَازَةِ** او اخستل په اجازت باندې موقوف نه وي.

**حل اللغة:** ① شراء-اخستل-② يتوقف-موقوف كيږي-③ ينفذ-نافذ كيږي-④ حياة-ژوند

**تشريح:-** او بيع په دې صورت كې ځكه لازميږي. چه كله ثمن هم معين سامان وي. او مبيع هم سامان وي. نودا به بيع مقايضه وي. او بيع مقايضه من وجه هر اړخ ته شراء وي. ګويا د فضولي په حق كې من وجه شراء ده. اوشراء د هيڅ چا په اجازت باندې موقوف نه وي. په دې وجه د فضولي په حق كې به دابيع لازم او نافذ وي. نوكه مالك اجازت وركړلو. نو ددې معنى داده. چه ثمن معين مالك ته وركړې شي. او د هغه نه مبيع واخستلې شي. اوكه ده اجازت ورنكړلو. حالانكه عقدلازم شو. نو په فضولي به د مبيع مثل واجب وي. كه مبيع مثلي وي. اوكه مثلي نه وي. نو په ده به دمبيع قيمت واجب وي.

**وَلَوْهَلَكَ الْمَالِكُ** اوكه مالك مړشو **لَايَنْفُذُ بِاِجَازَةِ الْوَارِثِ فِي الْفَصْلَيْنِ** نو دده دوارث په اجازت سره دواړو صورتونو كې به د فضولي بيع نه نافذ كيږي.

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. كه مالك د اجازت وركولونه وړاندې مړشو. نود فضولي بيع به د وارث په اجازت سره نه نافذ كيږي. كه ثمن دين وي. اوكه سامان معين وي.

**لِاَنَّهُ تَوَقَّفَ عَلَى اِجَازَةِ الْمُوَرِّثِ لِنَفْسِهِ** ځكه چې ذكرشوې بيع د مورث په ذاتي اجازت باندې موقوف وو **فَلَايَجُوْزُ بِاِجَازَةِ غَيْرِهِ** نود غير په اجازت باندې به نه جائز كيږي.

**تشريح:-** دليل دا دې چې د فضولي بيع مورث يعنى د مالك په ذاتي اجازت باندې موقوف وه. ځكه به دده نه علاوه د بل په اجازت سره جائز نه وي.

**وَلَوْاَجَازَ الْمَالِكُ فِي حَيَاتِهِ** اوكه مالك پخپل ژوند كې د بيع اجازت وركړو **وَلَايَعْلَمُ حَالَ الْمَبِيْعِ** حالانكه د مبيع حال معلوم نه دې **جَازَ الْبَيْعُ فِي قَوْلِ أَبِي يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَوَّلًا** نود ابويوسف رحمه الله د قول اول مطابق به بيع جائز وي. **وَهُوَقَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ** اوهم دا د امام محمد رحمه الله قول دې **لِاَنَّ الْاَصْلَ بَقَاؤُهُ** ځكه چې اصل د مبيع پاته كيدل دي.

**تشريح:-** اوكه مالك په خپل ژوند كې د بيع اجازت وركړلو. او بيا مړشو. حالانكه د مبيع حال معلوم نه دې. چه دا موجود دې يا معدوم دې. نود امام ابويوسف رحمه الله د اول قول مطابق به بيع جائز وي. اوهم دا د امام محمد رحمه الله قول دې. ځكه چې اصل هم دادې. چه مبيع موجود وي. اوهر كله چې د مبيع موجود كيدل اصل دي. نود مالك اجازت به تيك وي. اوهر كله چې دده اجازت ټيك دي. نو بيع به هم جائز وي.

**ثُمَّ رَجَعَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ** بيا ابويوسف رحمه الله ددې نه رجوع اوكړله **وَقَالَ: لَايَصِحُّ** او وې وئيل. چه صحيح نه ده **حَتّٰى يَعْلَمَ قِيَامَهُ عِنْدَ الْاِجَازَةِ** (۱) تردې چې د اجازت په وخت د مبيع موجود كيدل معلوم وي.

---

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا فى الدر المختار (۱۵۶\۱۴) وردالمحتار (أيضاً) وتقريرات (۴۸\۱۲ ...



**تشريح:-** بيا امام ابويوسف رحمه الله ددې نه رجوع اوكړله. او وې وئيل. چه بيع به صحيح نه وي. تردې چې د اجازت په وخت د مبيع موجود كيدل يقيني طورباندې معلوم نشي.

**لِاَنَّ الشَّكَّ وَقَعَ فِي شَرْطِ الْاِجَازَةِ** ځكه چې د اجازت په شرط كې شك واقع شوې دې **فَلَايَثْبُتُ مَعَ الشَّكِّ** په دې وجه به شك سره اجازت نه ثابتيږي.

**تشريح:-** دليل دا دې چې د اجازت شرط، يعنى په مبيع موجودكيدلوكې شرط واقع شوې دې. ځكه به د شك سره اجازت نه ثابتيږي. اوهر كله چې اجازت ثابت نشو. نود فضولي بيع به هم جائز نه وي.

### د مغصوب غلام خرڅول اوآزادولو مسئله

**قَالَ** فرمايي **وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا** اوكه يوسړي د بل كس غلام غصب كړو **فَبَاعَهُ** او خرڅ ئې كړو **وَأَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِي** او مشترى دا آزاد كړو **ثُمَّ أَجَازَ الْمَوْلَى الْبَيْعَ** بيا مولا د بيع اجازت وركړو **فَالْعِتْقُ جَائِزٌ اِسْتِحْسَانًا** نو استحساناً آزادول جائز دي **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوْسُفَ** (۱) اودا د شيخينو رحمهما الله په نيز دي.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې. چه يو كس د يو سړي غلام غصب كړو. بيا غاصب دا خرڅ كړلو او مشترى دا آزاد كړلو. بيا مولا د بيع اجازت وركړلو. نود شيخينو رحمهما الله په نيز د مشترى آزادول به استحساناً جائز وي. يعنى د مولا د اجازت نه روسته به دا غلام آزاد شي.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَايَجُوْزُ** او امام محمد رحمه الله فرمائيلي دي. چه جائز نه دي.

**تشريح:-** او امام محمد رحمه الله فرمائي. چه د قياس تقاضا داده. چه آزادي صحيح نه ده. يعنى د مشترى من الغاصب په آزادولو سره به دا غلام نه آزاديږي. اګرچه مولا د بيع اجازت وركړې وي. هم دا قول دامام زفر، امام شافعي، امام مالك او امام احمد رحمهم الله دي.[۲]

**لِاَنَّهُ لَاعِتْقَ بِدُوْنِ الْمِلْكِ** ځكه چې دملكيت نه بغير عتق نه كيږي **قَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ {لَاعِتْقَ فِيْمَا لَايَمْلِكُهُ ابْنُ آدَمَ}** ( ) نبى كريم ﷺ فرمائيلي دي. چه سړې د كوم مالك نه وي. په هغې كې عتق نه وي **وَالْمَوْقُوْفُ لَايُفِيْدُ الْمِلْكَ** اوكوم بيع چې موقوف ده. هغه مفيد د ملك نه ده.

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله دليل دادې. چه د ملك نه بغير آزادي نه وي. يعنى انسان چې د كوم مالك نه وي. د هغې په آزادولو سره آزاد هم نه متحقق كيږي. لكه چې صاحب د شريعت ﷺ فرمائيلي دي. «لانذر لابن آدم فيما لايملك ولاعتق له فيما لايملك ولاطلاق له فيما لايملك» (ترمذى) يعنى ،،دچا لپاره خو نه په غير مملوكه شئ كې نذر وي. اونه په غيرمملوكه څيزكې آزادي وي. اونه په غيرمملوكه (غيرمنكوحه) باندې طلاق واقع كيږي. بهرحال څوك چې دچا مالك نه وي. هغه آزادولې هم نشي. اوپه دې مسئله كې د غاصب اخستونكې د غلام مالك نه دې. ځكه د غاصب د اړخه چې كومه بيع شوې ده. ددې نفاذ دمالك يعنى د مغصوب منه په اجازت باندې موقوف ده. اود مشترى من الغاصب د آزادولو په وخت چونكه د مالك اجازت موجود نه وو. په دې وجه مشترى دآزادولو په وخت د غلام مالك نه وو.

---

(۱۹۳\۶) نقلاً عن القول الراجح(۷۰\۲)-

(۱) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۱۹۳\۶) والدرالمختار(۱۵۹\۴) والعناية (۱۹۳\۶) نقلاً عن القول الراجح(۷۱\۲)-

(۱) من حديث عمروبن شعيب عن أبيه عن جده أخرجه الترمذي فى الطلاق باب ۶ رقم ۱۱۸۱ وأبوداود فى الطلاق باب ۷ رقم ۲۱۹۰ وابن ماجه فى الطلاق باب ۱۷ رقم ۲۰۴۷)_

وَلَوْثَبَتَ فِي الْآخِرَةِ او که آخر کار ملکیت ثابت شو يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا نودا به (تیرشوی سبب ارخ ته) منسوب ثابت وي وَهُوَثَابِتٌ مِنْ وَجْهٍ دُونَ وَجْهٍ، اوکوم شئ چې منسوب ثابت وي.هغه من وجه ثابتیږي.او من وجه نه ثابتیږي وَالْمُصَحِّحُ لِلْإِعْتَاقِ الْمِلْكُ الْكَامِلُ حالانکه آزادول صحیح کول کامل ملك دي لِمَارَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړي دي.

حل اللغة ① المصحح-تصحیح کونکې-② الاعتاق-ازادول-③ الاستناد-منسوب کیدل-④ الکامل-پوره

تشریح:- شیخین رحمهما الله زیات نه زیات دا وئیلې شي.چه د انجام کار په اعتبار سره یعنی د مالك د اجازت په وخت مشتری لپاره ملك ثابت شو.نو موږ وایو.چه داملکیت به د تیرشوی سبب یعنی د غاصب بیع ارخ ته منسوب کیدلو باندې ثابتیږي. اوکوم ملك د استناد اود منسوب کیدلو په طریقه ثابت شي.هغه من وجه ثابتیږي.اومن وجه نه ثابتیږي.اوکوم ملك چې من وجه ثابت وي.اومن وجه ثابت نه وي.هغه ملك ناقص وي.حالانکه د آزادولو لپاره د کامل ملك کیدل ضروری دی.ځکه چې په حدیث «لاعتق فیما لایملك ابن آدم.....» کې ملك مطلق دي.اوکله چې مطلق اووئیلی شي.نو ددې نه کامل مراد وي.نو په حدیث کې د ملك نه مراد کامل ملك دي.اودلته کې د مشتری من الغاصب لپاره چونکه کامل ملك نشته.په دې وجه به دا غلام د مشتری من الغاصب د ارخه آزاد نه وي.

وَلِهٰذَالَايَصِحُّ او په دې وجه دا خبره صحیح نه ده أَنْ يُعْتِقَ الْغَاصِبُ چې غاصب آزادکړي ثُمَّ يُؤَدِّيَ الضَّمَانَ او تاوان اداکړي.

تشریح:- اود ملك نه بغیر چونکه آزادی نه واقع کیږي.په دې وجه که غاصب مخکې مغصوب غلام آزاد نکړلو.اوبیا نې مالك نه ضمان ادا کړلو.نودا غلام به د غاصب د ارخه آزاد نه وي.

وَلَاأَنْ يُعْتِقَ الْمُشْتَرِي اودا هم صحیح نه ده.چه مشتری آزاد کړي وَالْخِيَارُلِلْبَائِعِ اود بائع لپاره خیار وي ثُمَّ يُجِيزُ الْبَائِعُ ذٰلِكَ بیا بائع ددې بیع اجازت ورکړي.

تشریح:- اوهم دغه ډول که په بیع کې د بائع لپاره خیارشرط وي.او مشتری غلام آزاد کړي.نو غلام به آزاد نه وي.ځکه چې غاصب ته د تاوان ادا کاوه نه وړاندې اومشتری ته د بائع د اجازت نه وړاندې ملك نشته.اود تاوان ادا کاوه نه روسته غاصب ته،اود بائع د اجازت نه روسته مشتری ته کوم ملك حاصل شوې دې.دا په طریقه د استناد اوتیرشوی سبب ارخ ته منسوب کاوه سره حاصل شوې دې.چه په دې سره ناقص ملك ثابتیږي.ملك کامل نه ثابتیږي.حالانکه دآزادولو لپاره د کامل ملك کیدل ضروری دی.

وَكَذَالَايَصِحُّ بَيْعُ الْمُشْتَرِي مِنَ الْغَاصِبِ فِيمَانَحْنُ فِيهِ اوهم دغه ډول زموږ په دې مسئله کې د غاصب نه اخستل، او خرڅول صحیح نه دی مَعَ أَنَّهُ أَسْرَعُ نَفَاذًا سره ددې چې د آزادئ په نسبت بیع زر نافذ کیږي حَتّٰى نَفَذَ مِنَ الْغَاصِبِ إِذَا أَدَّى الضَّمَانَ تردې چې کله غاصب تاوان ورکړي.نو دده بیع نافذ کیږي.

تشریح:- دغه ډول که یوکس د غاصب نه غلام واخلي.اود یوبل کس په لاس نې خرڅ کړي.بیا مالك د بیع اول اجازت ورکړلو.نودا بیع ثاني صحیح نه ده.نوهم دغه ډول که مشتری من الغاصب غلام آزاد کړي.نو آزادول به صحیح نه وي.ځکه چې د آزادئ په نسبت بیع زر نافذکیږي.نوکه غاصب غلام خرڅ کړلو.بیا نې ددې تاوان خرڅ کړلو.نود غاصب بیع به نافذشي.اوکه غاصب غلام آزاد کړلو.بیا نې تاوان ادا کړلو.نودده آزادول به نافذ نه وي.نو هرکله چې د مشتری من الغاصب بیع صحیح نه ده.حالانکه په نسبت د آزادئ بیع زر نافذ کیږي.نود مشتری من الغاصب آزادول به په درجه اولی صحیح نه وي.

وَكَذَالَايَصِحُّ إِعْتَاقُ الْمُشْتَرِي مِنَ الْغَاصِبِ اوهم دغه ډول د غاصب نه د اخستونکی آزادول نه صحیح کیږي إِذَاأَدَّى الْغَاصِبُ الضَّمَانَ کله چې غاصب تاوان اداکړي.



تشریح:- اولکه خنګه چې د مشتری من الغاصب آزادول نه صحیح کیږي.چه غاصب تاوان اداکړي.نوهم دغه ډول د مشتری من الغاصب ازادول هم نه صحیح کیږي.چه مالك د بیع اجازت ورکړي.

وَلَهُمَا شیخینو رحمهما الله دلیل دادي أَنَّ الْمِلْكَ ثَبَتَ مَوْقُوفًا بِتَصَرُّفٍ چې دمشتری ملکیت د مالك په اجازت باندې موقوف داسې تصرف سره ثابت شو مُطْلَقٍ چې مطلق دي مَوْضُوعٍ لِإِفَادَةِ الْمِلْكِ، اودا د ملك فائده ور کاوه لپاره موضوع ده وَلَا ضَرَرَفِيهِ او په دې کې د چا ضرر هم نشته عَلٰى مَامَرَّ لکه چې وړاندې ذکرشوی دی فَتَوَقَّفَ الْإِعْتَاقُ مُرَتَّبًا عَلَيْهِ نو اعتاق به هم په دې باندې مرتب موقوف وي وَيَنْفُذُ بِنَفَاذِهِ او دده په نافذ کاوه باندې به نافذ کیږي.

حل اللغة: ① موضوع-مقررشوې-② الاعتاق-ازادول-③ ینفذ-نافذ کیږي-④ المشتری-اغوستونکې

تشریح:- د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د مشتری من الغاصب ملك،د غلام په اجازت باندې موقوف په داسې تصرف سره ثابتیږي،کوم چې مطلق دې.یعنی په دې کې د خیار وغیره شرط نشته.اود ملکیت [illegible]ده ور کاوه لپاره وضع شوې دې.اود مشتری من الغاصب لپاره ملك موقوف ثابتولوکې دمالك څه نقصان هم نشته.لکه څنګه چې وړاندې تیرشوی دی.نوهرکله چې د،،مشتری من الغاصب،، ملك د مالك په اجازت باندې موقوف دې.نو دده آزادول به هم د مالك په اجازت باندې موقوف وي.اوکله چې د مالك په اجازت سره بیع نافذ شي.نو ددې سره سره به آزادول هم نافذ شي.

فَصَارَ اودا داسې شوه. كَإِعْتَاقِ الْمُشْتَرِي مِنَ الرَّاهِنِ لکه د راهن د اخستونکی آزادول.

تشریح:- اودا داسې شوه.لکه مثلاً یوکس د یوسړي نه پور واخستلو.اود هغه سره ئې یوغلام رهن کیخودلو.بیا راهن د مرتهن د اجازت نه بغیر غلام خرڅ کړلو.نو مشتری دا آزاد کړلو. نودا آزادی به د مرتهن په اجازت یا په رهن پریښولو باندې موقوف وي.یعنی که مرتهن د بیع اجازت ورکړلو.بیا به هم د مشتری من الراهن آزادول نافذ وي.اوکه راهن د مرتهن قرضه اداکړله.بیا به هم د آزادئ نفاذ کیږي.نولکه څنګه چې د مشتری من الراهن آزادول ټیك اوجائز دی.دغه ډول د مشتری من الغاصب آزادو به هم ټیك اوجائز وي.

وَكَإِعْتَاقِ الْوَارِثِ عَبْدًا مِنَ التَّرِكَةِ او لکه (مثلاً) وارث د ترکه کوم غلام آزاد کړي وَهِيَ مُسْتَغْرَقَةٌ بِالدُّيُونِ او حال داچه ترکه په پور کې راګیره ده يَصِحُّ،نودا صحیح کیږي وَيَنْفُذُ إِذَاقَضَى الدُّيُونَ بَعْدَ ذٰلِكَ اود اعتاق نه روسته چې کله قرضه اداکړې شوه.نود وارث اعتاق به نافذ وي.

حل اللغة: ① الترکة-میراث-② مستغرقة-راګیرېدل-③ الدیون-جمع د دین،قرض-④ یصح-صحیح کیږي

تشریح:- اودا داسې ده.لکه مثلاً یو وارث د مړی د ترکې (میراث) نه یوغلام آزاد کړلو.په داسې حال کې چې د مړی ترکه د خلګوپه قرضونوکې راګیره ده.نودا آزدول به موقوف صحیح وي.که وارث د غلام آزادولو نه روسته دمړی قرضه ادا کړله.نود وارث آزادول به نافذ وي.

بِخِلَافِ إِعْتَاقِ الْغَاصِبِ بِنَفْسِهِ په خلاف ددې که غاصب پخپله آزاد کړې وي لِأَنَّ الْغَصْبَ غَيْرُمَوْضُوعٍ لِإِفَادَةِ الْمِلْكِ ځکه چې غصب د ملك د افادة لپاره موضوع نه ده.

تشریح:- دا د امام محمد رحمه الله د ارخه بیان شوی لومړنی مسئلې ځواب دې.وضاحت ئې دا دې که غاصب پخپله غلام آزاد کړلو.او بیا ئې تاوان اداکړلو.نو آزادول ځکه صحیح نه دی.چه غصب د ملکیت ثابتولو لپاره نه دې وضع شوې.یعنی په غصب سره دغاصب لپاره ملکیت نه ثابتیږي.ځکه چې غاصب د مالك دشمن دې.اود ضمان ادا کاوه په وخت د غاصب لپاره مذ[illegible]ت ضرورتاً ثابتیږي.چه دواړه بدل یعنی غلام او ضمان د یوسړي په ملك یعنی د مالك په ملك کې جمع نشي.نو غصب به د ضمان ادا کاوه په وخت د ملکیت حاصلولو سبب وي.ګویا غاصب د ضمان ادا کاوه په وخت د غلام مالك شو.اودا ئې وړاندې آزادکړې دې.نودا د غیرمملوك آزادول شو.اود غیر مملوك آزادول صحیح نه وي.ځکه به د غاصب ازادول صحیح نه وي.

**وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِي الْبَيْعِ خِيَارُ الْبَائِعِ** او په خلاف ددې کله چې په بيع کې د بائع خيار وی **لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُطْلَقٍ** ځکه چې دا بيع مطلق نه ده **وَقِرَانُ الشَّرْطِ بِهِ يَمْنَعُ انْعِقَادَهُ فِي حَقِّ الْحُكْمِ أَصْلًا** او ددې سره دشرط مقارن کېدل د حکم په حق کې ددې انعقاد بالکل منع کوی.

**تشريح:-** د دويمې مسئلې خواب دا دې چې د بائع د خيار په صورت کې د مشتری آزادول ځکه صحيح نه دی چې دا بيع مطلق نه ده.بلکه د خيارشرط سره مقيد ده.اوکه د بائع لپاره خيارشرط وی.نو مشتری د مبيع نه مالك کيږی.نو په دې صورت کې د آزادۍ په وخت مشتری د غلام مالك نه وو.او هر کله چې مشتری د آزادولو په وخت د غلام مالك نه وو.نو دده آزادول به هم لغو وی.ځکه چې دغيرمملوك آزادول صحيح نه دی.

**وَبِخِلَافِ بَيْعِ الْمُشْتَرِي مِنَ الْغَاصِبِ** او په خلاف دغاصب نه د اخستونکی **إِذَا بَاعَ** کله چې دی دا خرڅ کړی **لِأَنَّ بِالْإِجَازَةِ يَثْبُتُ لِلْبَائِعِ مِلْكٌ بَاتٌّ،** ځکه چې داجازت په وجه د بائع لپاره قطعي ملك ثابتيږی **فَإِذَا طَرَأَ عَلَى مِلْكٍ مَوْقُوفٍ لِغَيْرِهِ** او هر کله چې په ملك موقوف باندې دا ملك قطعي خور شو **أَبْطَلَهُ** نودا باطلوی.

**تشريح:-** د دريمې مسئلې خواب دادې.چه کله مشتری من الغاصب غلام خرڅ کړلو.نودا صحيح نه دی.ځکه چې کله مالك يعنی مغصوب منه د بيع اول اجازت ورکړلو.نود بائع يعنی د مشتری من الغاصب لپاره به ملك قطعي ثابت شو.اود مشتری من الغاصب لپاره ملك موقوف ثابت دې.نود مالك په اجازت سره د مشتری من الغاصب لپاره چې کله ملك قطعي ثابت شو.اودا په ملك موقوف باندې خور شو. نودا ملك قطعي به ملك موقوف باطل کړی.اوهر کله چې ملك موقوف باطل شو.نوده ته به اجازت لاحق (متعلق) نه وی. او هر کله چې ده ته اجازت لاحق نشو.نودا به هم صحيح نه وی.په دې وجه به دمشتری من الغاصب په بل چا باندې خرڅول صحيح نه وی.

**وَأَمَّا إِذَا أَدَّى الْغَاصِبُ الضَّمَانَ** او هر کله چې غاصب تاوان اداکړو **يَنْفُذُ إِعْتَاقُ الْمُشْتَرِي مِنْهُ** نود غاصب نه د اخستونکی اعتاق به نافذ وی **كَذَا ذَكَرَهُ هِلَالٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ** شان دا هلال ؒ ذکرکړی دی **وَهُوَ الْأَصَحُّ** هم دغه.اوهم دا اصح دې.

**تشريح:-** د څلورمې مسئلې خواب دادې.چه کله غاصب ضمان ادا کړلو.نود مشتری من الغاصب آزادول نافذ کېدل موږ نه منو.لکه څنګه چې امام محمد ؒ د عدم نفاذ قائل دې.بلکه د غاصب د ضمان ادا کاوه نه روسته دمشتری من الغاصب آزادول به نافذ وی.لکه څنګه چې بلال الرى بن يحي بصرى صاحب د،، کتاب الوقف،، ذکر کړی دی.اوهم دا زيات صحيح قول دې.نولکه څنګه چې د غاصب د ضمان ادا کاوه نه روسته د مشتری من الغاصب آزادول صحيح او نافذ دی.دغه ډول د مالك د اجازت ور کاوه نه روسته به هم د مشتری من الغاصب آزادول صحيح او نافذ وی.

## د مغصوب غلام لاس کټ کېدل اود تاوان مسئله

قَالَ فرمايي **فَإِنْ قُطِعَتْ يَدُ الْعَبْدِ** نو که دغلام لاس کټ کړی شو **فَأَخَذَ أَرْشَهَا** او مشتری من الغاصب ددې جرمانه وصول کړله **ثُمَّ أَجَازَ الْمَوْلَى الْبَيْعَ** بيا نې دبيع اجازت ورکړو **فَالْأَرْشُ لِلْمُشْتَرِي** نودا جرمانه به د مشتری لپاره وی.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.که د مشتری من الغاصب سره د غلام لاس کټ کړې شو.اومشتری ددې جرمانه وصول کړله.بيا مولا د غاصب د بيع اجازت ورکړلو.نودا جرمانه به د مشتری من الغاصب لپاره وی.

**لِأَنَّ الْمِلْكَ قَدْ تَمَّ لَهُ مِنْ وَقْتِ الشِّرَاءِ،** ځکه چې د مشتری ملکيت د اخستلو د وخت نه پوره شو **فَتَبَيَّنَ** نو ښکاره شوه **أَنَّ الْقَطْعَ حَصَلَ عَلَى مِلْكِهِ** چې لاس کټ کېدل،د مشتری په ملکيت باندې واقع شو.

**تشريح:-** ځکه چې د اجازت په وجه د مشتری ملکيت د اخستلو د وخت نه پوره شو.نوښکاره شوه.چه لاس کټ کېدل،د مشتری په ملکيت باندې واقع شو.اوهر کله چې لاس د مشتری په ملکيت کې کټ کړې شو.نو جرمانه به هم د مشتری لپاره وی.

**وَهٰذِهِ حُجَّةٌ عَلَى مُحَمَّدٍ** اودا مسئله په امام محمد ؒ باندې حجت دې.



**تشريح:-** علامه مرغيناني ؒ فرمائي.چه دا مسئله د امام محمد ؒ خلاف حجت دې.ځکه چې امام محمد ؒ په ملك موقوف کې آزادول جائز نه ګڼړی.حالانکه که مشتری ته ملکيت حاصل نه وو.نود مالك د اجازت په وخت به ده ته د لاس جرمانه نه حاصليدله.نود مشتری من الغاصب لپاره د جرمانې نه حاصلېدل. ددې خبرې دليل دې.چه د اجازت په وجه د مشتری لپاره داخستلو د وخت نه ملکيت حاصل شوې دې اوهر کله چې د مشتری لپاره ملکيت حاصل شو.نو دده د ارخه به آزادول هم صحيح وی.حالانکه امام محمد ؒ آزادول جائز نه ګڼړی.

**وَالْعُذْرُ لَهُ** اود امام محمد ؒ عذر دادې **أَنَّ الْمِلْكَ مِنْ وَجْهٍ يَكْفِي لِاسْتِحْقَاقِ الْأَرْشِ** چې د لاس ديت مستحق کېدلو لپاره يو ډول ملکيت کافي کيږی.

**حل اللغة:** ① **يكفى**-کافي کيږی-② **الاستحقاق**-مستحق کېدل-③ **الارش**-ديت-④ **الرق**-غلامی

**تشريح:-** د حضرت امام محمد ؒ د ارخه خواب دادې.چه د جرمانې مستحق کېدلو لپاره من وجه مالك کېدل کافي دی.د کامل ملك حاصليدل ضروری نه دی.

**كَالْمُكَاتَبِ إِذَا قُطِعَتْ يَدُهُ** لکه چې د مکاتب لاس کټ کړې شو **وَأَخَذَ الْأَرْشَ** اوجرمانه نې واخستله **ثُمَّ رُدَّ فِي الرِّقِّ** بيا دې رقيق شو **يَكُونُ الْأَرْشُ لِلْمَوْلَى** نود جرمانې دا مال به د مولا لپاره وی.

**تشريح:-** لکه مثلاً د مکاتب لاس کټ کړې شو.اوده جرمانه واخستله.بيادې عاجز شو.او رقيق شو.نودا مال دده د مولا وی.

**فَكَذَا إِذَا قُطِعَتْ يَدُ الْمُشْتَرِي فِي يَدِ الْمُشْتَرِي** او لکه (مثلاً) که مشتری سره د مبيع لاس کټ کړې شو **وَالْخِيَارُ لِلْبَائِعِ** حالانکه د بائع لپاره خيار دې **ثُمَّ أُجِيزَ الْبَيْعُ** بيا د بيع اجازت ورکړې شو **فَالْأَرْشُ لِلْمُشْتَرِي** نودا جرمانه به مشتری ته ملاويږی.

**تشريح:-** اولکه مثلاً د مشتری په قبضه کې مبيع يعنی د غلام لاس کټ کړې شو.اود بائع لپاره خيارشرط وو.بيا د بيع اجازت ورکړې شو.نو په دې صورت کې هم چونکه دمشتری لپاره من وجه ملك حاصل دې.ځکه به د جرمانې مال هم دده لپاره وی.

**بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ عَلَى مَا مَرَّ** په خلاف د اعتاق لکه چې پورته تيرشوی دی.

**تشريح:-** ددې په خلاف د مشتری من الغاصب آزادول.نود امام محمد ؒ په نيز به دا نافذ نه وی.ځکه چې د آزادولو لپاره د کامل ملك کېدل ضروری دی.من وجه ملك کافي نه وی.اود مشتری من الغاصب لپاره چونکه من وجه ملك ثابت وی.په دې وجه به د مشتری من الغاصب آزادول صحيح نه وی.

**وَيَتَصَدَّقُ بِمَا زَادَ عَلَى نِصْفِ الثَّمَنِ** اود نصف ثمن نه چې کوم زياتي دې.هغه دې صدقه کړی.

**تشريح:-** صاحب د کتاب ؒ فرمائي.په مشتری واجب دی.چه د نيم ثمن نه څومره قدرې جرمانه زياتي وی.هغه صدقه کړی.

**لِأَنَّهُ لَمْ يَدْخُلْ فِي ضَمَانِهِ** ځکه چې غلام د مشتری په ضمان کې داخل شوې نه وو.

**تشريح:-** ځکه چې د غلام لاس که د مشتری د قبضې نه وړاندې کټ شوې دې.نومبيع دده په قبضه کې د نه راتګ په وجه دده په ضمان کې داخل نشو.اوهر کله چې مبيع دده په ضمان کې داخل نشو.نود نصف ثمن نه زيات به ددې شئ نفع وی.کوم چې دده په ضمان کې نه دې داخل شوې.اوکوم شئ چې په ضمان کې داخل نه وی.د هغې نفع جائز نه وی.په دې وجه به د نصف ثمن نه زياتي صدقه کول واجب وی.

**أَوْ فِيهِ شُبْهَةُ عَدَمِ الْمِلْكِ** يا په ده کې د ملك نه کېدلو شبه ده.

**تشريح:-** اوکه دغلام لاس د قبضې نه روسته کټ کړی شو.نود مولا اجازت نه کېدلو په وجه د لاس کټ کاوه په وخت په حقيقت کې د مشتری ملك موجود نه دې.بلکه د مشتری ملك د استناد په طريقه ثابت دې.اوکوم ملك چې د استناد په طريقه ثابت وی.هغه من وجه ثابت وی.په دې وجه دې کې د عدم ملك شبه پيدا شوه.اوهر کله چې د

عدم ملك شبه پيدا شوه.نوده ته چې كومه نفع حاصل شي.هغه به جائز نه وي.اوهركله چې دا نفع جائز نه ده.نو ددې صدقه كول به واجب وي.

**د مشتري من الغاصب د خرڅولو نه روسته د مولا د نفاذ اجازت نه روسته د بيع ثاني حكم**

قال فرمايي فان باعه المشتري من آخر بيا كه مشتري من الغاصب دا غلام د بل په لاس خرڅ كړو ثم اجاز المولى البيع الاول بيا مولا د بيع اول اجازت وركړو لم يجز البيع الثاني نو بيع ثاني جائز نه ده لما ذكرنا د هغه دليل په وجه كوم چې مونږ ذكر كړي دي.

تشريح:- مسئله داده.كه مشتري من الغاصب دا غلام د بل چا په لاس خرڅ كړلو.بيا مولا د بيع اول اجازت وركړلو.نو بيع ثاني به جائز نه وي. يو دليل خو وړاندې تيرشوې دې.چه كله ملك قطعي په ملك موقوف باندې خور شي.نودا ملك موقوف باطلوي.

ولان فيه غرر الانفساخ على اعتبار عدم الاجازة في البيع الاول اوځكه چې په بيع اول كې د عدم اجازت اعتبار كاوه سره په بيع ثاني كې د عقد فسخ كيدلو دهوكه ده والبيع يفسد به حالانكه په داسې دهوكه سره بيع فاسدېږي.

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه د بيع ثاني نافذ كيدل، په دې امرباندې موقوف دي.چه د بيع اول اجازت حاصل شي.خو احتمال دې.چه مولا د بيع اول اجازت ورنكړي.نو په بيع ثاني كې دهوكه ده.اوپه كوم بيع كې چې داسې دهوكه وي.هغه فاسد وي.كه تاسو دا اووايئ.چه لكه څنګه د مشتري من الغاصب بيع جائز نه ده.دغه ډول دده آزادول هم جائز كيدل نه دي پكار.حالانكه د شيخينو رحمهما الله په نيز آزادول جائز دي.ددې خواب دادې.چه دلته كې صرف دهوكه ده.او دهوكه بيع فاسدوي.

بخلاف الاعتاق عندهما په خلاف د شيخينو رحمهما الله په نيز د اعتاق جائز كيدلو لانه لا يؤثر فيه الغرر ځكه چې په اعتاق كې دهوكه نه متاثر كيږي.

حل اللغة: ① الاعتاق-ازادول-② الغرر-دهوكه-③ يوثر-اثر كوي-④ مات-مړ شو

تشريح:- پاتې شو اعتاق،نودا داسې دهوكې سره نه فاسدېږي.په دې وجه اعتاق جائز دې.اوبيع جائز نه ده.لكه څنګه چې په منقولات كې د قبضه كاوه نه وړاندې بيع د فسخ كاوه دهوكې په وجه ناجائز وي.خود قبضه كاوه نه وړاندې اعتاق جائز دې.

**مغصوب غلام د مشتري په لاس كښې مړكيدلو مسئله**

قال فرمايي فان لم يبعه المشتري وكه مشتري من الغاصب دا مبيع غلام خرڅ كړو فمات في يده خودا د مشتري په قبضه كې مړشو او قتل يا قتل كړې شو ثم اجاز البيع بيا مالك د بيع اجازت وركړو لم يجز نودا بيع به جائز نه وي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله په اوله مسئله باندې تفريع بيان كړې ده.فرمائي.چه مشتري من الغاصب كه غلام خرڅ نكړلو .بكله دا د مشتري په قبضه كې مړشو.يادې قتل كړې شو.بيا مالك د غاصب د بيع اجازت وركړلو.نودا بيع به جائز نه وي.

لما ذكرنا د هغه دليل په وجه كوم چې مونږ ذكر كړو ان الاجازة من شروطها قيام المعقود عليه چې داجازت شرط د معقود عليه موجود كيدل دي. وقد فات بالموت حالانكه د مرګ په وجه معقود عليه فوت شو وكذا بالقتل اوهم دغه ډول د قتل په وجه معقود عليه فوت شو.

تشريح:- دليل وړاندې تيرشوې دې.چه د اجازت شرط دادې.چه داجازت په وخت معقودعليه موجود وي.حالانكه معقودعليه يعنى غلام د اجازت نه وړاندې مړشوې دې. يا قتل كړې شوې دې.اود قتل په وجه په قاتل باندې مشتري لپاره د غلام بدل يعنى قيمت واجبول هم ممكن نه دي

اذ لا يمكن ايجاب البدل للمشتري بالقتل ځكه چې د قتل په وجه مشتري لپاره قيمت واجبول ممكن نه دي حتى يعد



باقيا ببقاء البدل چې د بدل په موجود كېدو سره معقود عليه موجود شمار كړې شي. لانه لا ملك للمشتري عند القتل ملكا يقابل بالبدل ځكه چې د قتل په وخت مشتري لپاره داسې ملك نه وو.چه ددې په مقابله كې عوض وي فتحقق الفوات نو فوت كيدل به متحقق وي.

حل اللغة: ① يتحقق-ثابتيږي-② يعد-شمارلې شي-③ الايجاب-واجبول-④ امكن-ممكن ده

تشريح:- ځكه چې د مشتري ملك، ملك موقوف دې.اود ملك موقوف په مقابله كې بدل نه وي.نو هركله چې د مشتري لپاره داسې ملك ثابت نه دې. د كوم په مقابله كې چې بدل وي چه د بدل په موجود كيدلو سره معقود عليه موجود شمار كړې شي.نو معقودعليه په حقيقت كې هم فوت شو.اوهركله چې معقودعليه بالكليه معدوم شو.نود مالك په اجازت به ذكرشوې بيع جائز نه وي.

بخلاف البيع الصحيح په خلاف د بيع صحيح لان ملك المشتري ثابت ځكه چې د مشتري ملك ثابت دې فامكن ايجاب البدل له نو دده لپاره د بدل واجبول ممكن دي فيكون المبيع قائما ببقاء خلفه. نو دده د خليفه موجود كيدلو سره به مبيع موجود وي.

تشريح:- ددې په خلاف كه په بيع صحيح كې د قبضه نه وړاندې غلام مړشو.يا قتل كړې شو.او چونكه د مشتري ملك ثابت دې.په دې وجه د مشتري لپاره د مبيع قيمت واجبول ممكن دي.نوقيمت يعنى د خليفه موجود كيدلو سره به مبيع موجود وي.اوهركله چې مبيع موجود دې.نوبيع به هم پاتې وي.البته مشتري ته به اختيار وي.چه دې بدل يعنى د مبيع قيمت واخلي.يا وانخلي.خوكه ده بدل واخستلو.نو بدل به هم دده وي.

**بغير اجازته د بل غلام خرڅولو نه روسته په دې دعوه د مشتري د ګواهانو قبلولو مسئله**

قال فرمايي ومن باع عبد غيره بغير امره ك[illegible]س دبل غلام دهغه د حكم نه بغير خرڅ كړو واقام المشتري البينة على اقرار البائع او رب العبد انه لم يامره بالبيع او مشتري د بائع په اقرار يا د غلام د مالك په اقرار باندې،چه هغه ده ته د بيع حكم نه دې وركړې.بينه قائم كړل واراد رد المبيع و مشتري د بيع واپس كاوه اراده اوكړله.

تشريح:- مسئله داده.كه يوكس د بل سړي غلام د مالك د اجازت نه بغير خرڅ كړلو.بيا مشتري دا بيع ردكول اوغوښتل.او وې وئيل.چه تا دا غلام د مالك د اجازت نه بغير خرڅ كړې دې.خو بائع ددې انكار اوكړلو.بيا مشتري په دې باندې ګواه قائم كړل.چه بائع ددې اقرار كړې دې.چه مالك دده د خرڅولو اجازت نه دې وركړې.يانې د غلام د مالك په اقرار باندې بينه قائم كړل.چه مالك بائع ته اجازت نه دې وركړې.په دې دواړو صورتونو كې به دمشتري بينه نه قبليږي.

لم تقبل بينته للتناقض في الدعوى نو په دعوه كې د تناقض په وجه به د مشتري بينه نشي قبلولې اذ الاقدام على الشراء اقرار منه بصحته ځكه چې په اخستلو باندې اقدام كول د مشتري د اړخه د بيع د صحت اقرار دې والبينة مبنية على صحة الدعوى او بينه د دعوه په صحت باندې مبني وي.

تشريح:- ځكه چې د مشتري په دعوه كې تناقض دې.په دې طريقه چې هركله مشتري د اخستلو اقدام اوكړلو.نوګويا ده د شراء د نه صحيح كيدلو اقرار اوكړلو.اوكله چې نې ددې نه روسته بينه قائم كړل.او بينه په صحيح دعوه باندې مبني وي.نوهركله چې د تناقض په وجه دعوه صحيح نشوه. نود مشتري بينه به هم نه قبليږي.

**د بائع اقرار اود مشتري د بطلان دعوه كول**

وان اقر البائع بذلك عند القاضي وكه بائع قاضي سره ددې امر اقرار اوكړو بطل البيع نو بيع به باطل وي ان طلب المشتري ذلك كه مشتري ددې مطالبه اوكړله.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه بائع د قاضي وړاندې ددې خبرې اقرار اوكړو.چه مادا غلام دمالك د اجازت نه بغير خرڅ كړې دې.نودا بيع به باطل وي.په دې شرط چې مشتري د بطلان بيع مطالبه كړې وي.

لِأَنَّ التَّنَاقُضَ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ خکه چې د صحت تناقض اقرار نه منع کوي.

**تشریح:-** خکه چې تناقض د اقرار صحیح کیدلو نه مانع نه دي لکه که یوکس د یوځیز انکار اوکړي بیا ددې اقرار اوکړي نو صحیح ده.خو دومره خبره ضرور ده.چه اقرار حجت قاصره دی.د غیر په حق کې ددې نفاذ نه کیږي.

وَلِلْمُشْتَرِي نود مشتری لپاره اختیار دي أَنْ يُسَاعِدَهُ عَلَى ذٰلِكَ چې دې د بائع په دې اقرار باندې موافقت اوکړي فَيَتَحَقَّقُ الْإِتِّفَاقُ بَيْنَهُمَا نو په بائع اومشتری کې به اتفاق پیدا شي فَلِهٰذَا شَرَطَ طَلَبَ الْمُشْتَرِي نو په دې وجه د مشتری د طلب کاوه شرط اولګولې شو.

**حل اللغة:** ① يساعد-بدلیدل-② تحقق-ثابتیدل-③ سالم-بغیرشریکه-④ يد-قبضه

**تشریح:-** خوکه مشتری په دې اقرار باندې د بائع موافقت اوکړي.نود بائع اومشتری په مینځ کې به اتفاق پیدا شي.او بیع ماتول به جائز وي.نوهم په دې وجه د بیع رد کاوه لپاره د مشتری د مطالبې شرط لګولې شوې دې چه د دواړو په اتفاق سره بیع ردشي.

قَالَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: شیخ مصنف ﷫ فرمايي وَذَكَرَ فِي الزِّيَادَاتِ چې په زیادات کې دامسئله ذکرده أَنَّ الْمُشْتَرِيَ إِذَا صَدَّقَ مُدَّعِيَهُ چې هرکله مشتری د خپل مدعی تصدیق اوکړو ثُمَّ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ بیا مشتری بینه قائم کړل عَلَى إِقْرَارِ الْبَائِعِ د بائع په دې اقرار باندې أَنَّهُ لِلْمُسْتَحِقِّ چې دا بیع د مستحق ده تُقْبَلُ نو بینه به قبلولې شي.

**تشریح:-** دا مسئله په زیادات کې داسې ذکر ده.که یوسړی دعوه اوکړله.چه مشتری سره کوم غلام دې.دا زما دې او مشتری ددې مدعی تصدیق اوکړلو.بیا مشتری بینه قائم کړل.چه بائع ددې خبرې اقرار کړې دې چه دامبیع غلام ددې مستحق ملك دې.نود مشتری دا بینه به قبلولې شي.اګرچه د مشتری په دعوه کې تناقض دې.

وَفَرَّقُوا او مشائخ توپیر بیان کړې دې أَنَّ الْعَبْدَ فِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي. وَفِي تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ فِي يَدِ غَيْرِهِ وَهُوَ الْمُسْتَحِقُّ، چې غلام ددې نه علاوه یعنی د مستحق په قبضه کې دې وَشَرْطُ الرُّجُوعِ بِالثَّمَنِ اود ثمن واپس اخستلو شرط دادې أَنْ لَا يَكُونَ الْعَيْنُ سَالِمًا لِلْمُشْتَرِي چې د مشتری لپاره عین بیع سالم نه وي.

**تشریح:-** مشائخو د جامع صغیر اود زیادات په مسئلوکې داسې توپیر بیان کړې دې.چه د جامع صغیر په مسئله کې غلام د مشتری په قبضه کې دې.نومبیع یعنی غلام د مشتری لپاره سلامت شو.او هرکله چې مبیع د مشتری لپاره سلامت دې.نومشتری ته به د بائع نه د ثمن واپس اخستلو حق نه وي.خکه چې د رجوع بالثمن شرط د مبیع نه سالم کیدل دی.اود زیات په مسئله کې مبیع غلام د مستحق په قبضه کې دې.نوپه دې صورت کې مبیع یعنی غلام به د مشتری لپاره سلامت نه وي.اوهرکله چې مبیع د مشتری لپاره سالم نشو.نوده ته به د بائع نه د خپل ثمن واپس اخستلو حق وي.خکه چې په دې صورت کې د رجوع بالثمن شرط لګولې موجود شوې دې.

### بغیراجازته د بل مملوك كورخرڅولو نه روسته د مشتري پخپل كوركښې شاملولو مسئله

قَالَ وَمَنْ بَاعَ دَارَ الرَّجُلِ مصنف ﷫ فرمائي.اوکه یوکس د چا کور خرڅ کړو وَأَدْخَلَهَا الْمُشْتَرِي فِي بِنَائِهِ لَمْ او مشتری دا پخپل عمارت کې داخل کړو يَضْمَنِ الْبَائِعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ﷫ نود ابوحنیفه ﷫ په نیز به بائع ددې ضامن نه وي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ آخِرًا اوهم دا د ابویوسف ﷫ آخری قول دې.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی د بل سړی کور دده د حکم نه بغیرخرڅ کړلو.اومشتری دا پخپل کورکې داخل کړلو.یعنی په دې ئې قبضه اوکړله.نو بائع به دمالك لپاره د کور د قیمت ضامن نه وي.هم دا د امام ابویوسف ﷫ آخری قول دې.

وَكَانَ يَقُولُ أَوَّلًا: او ابویوسف ﷫ به مخکې فرمائیل يَضْمَنُ الْبَائِعُ، چې بائع به ضامن وي وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ اوهم دا د امام محمد ﷫ قول دې وَهِيَ مَسْأَلَةُ غَصْبِ الْعَقَارِ اودا د ،،غصب العقار،، مسئله ده وَسَنُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى وَاللّٰهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ. دا به موږ ان شاء الله په ،،کتاب الغصب،، کې بیانوو.والله اعلم بالصواب



**تشریح:-** اوابویوسف ﷫ به مخکې فرمائیل چه بائع به د کور د قیمت ضامن وي.هم دا د امام محمد ﷫ قول دې.دا مسئله د غیرمنقوله جانداد دغصب ده.چه ددې پوره تفصیل به ان شاء الله په کتاب الغصب کې راخي.لنډیز داده.چه د امام ابوحنیفه ﷫ په نیز د غیرمنقوله جانداد غصب چونکه نه متحقق کیږي.خکه به بائع یعنی غاصب ضامن نه وي.اود امام محمد ﷫ په نیز چونکه متحقق کیږي.په دې وجه به بائع یعنی غاصب ضامن وي.

## باب السلم

ژباړه ( دا ) باب د بیع سلم ( په بیان کې ) دې.

**تشریح:-** التوضیح الصرفی للفظ السلم ۞ لفظ سلم، د تسلیم نه اخستې شوې دې.خکه چې په بیع سلم کې راس المال په مجلس کې دننه سپارل لازمی او ضروری دی.لفظ سلم او سلف دواړه مترادف دی.دغه ډول اسلم او اسلف مترادف دی.قاله بدرالدین عینی ﷫ ② اویا چې لفظ سلم یا خو د اسلم نه اخستې شوې دې.او همزه په دې کې د سلب لپاره ده.خکه چې د رب السلم په راس المال یعنی دراهم مسلم الیه ته په سپارلو سره ددې سلامتیا زائل شي.یعنی رب السلم چې کله راس المال مسلم الیه ته اوسپارلو.نودا رب السلم سره سلامت پاتې نشو.

**معنی السلم لغة وشرعاً** ۞ سلم په لغت کې د یوداسې بیع نوم دې.چه په دې کې ثمن معجل وي.یعنی فوراً ادا کولې شي.بیع سلم د فقهاؤ په اصطلاح کې مؤجل د معجل په عوض اخستلو ته وائي.

**رکنه** ۞ د بیع سلم رکن ایجاب او قبول دې.مثلاً یو سړې بل کس ته وائي. «أسلمت إليك عشرة دراهم في كرحنطة يا أسلفت إليك عشرة دراهم في كرحنطة» ما تاسره په یو کُر غنموکې د لس درهمو په عوض عقدسلم اوکړلو. دوهم کس اووئیل.ما قبول کړلو.نو ده ته به صاحب دراهم یعنی رب السلم به وئیلې شي.او دوهم کس ته به مسلم الیه وئیلې شي.او غنمو ته مسلم فیه او دراهمو ته راس المال وئیلې شي.

دبیع سلم حکم،د رب السلم لپاره په مسلم فیه کې په مؤجل طور باندې ملك ثابتیدل،اود مسلم الیه لپاره فی الحال په راس المال باندې ملك ثابتیدل دی.اوشرطونه ئې روستو راروان دی

**الربط بما قبله** ۞ علامه مرغینانی ﷫ مخکې هغه بیوع بیان کړی دی.چه په هغې کې په عوضین یا احدالعوضین باندې قبضه کول شرط نه دی.او اوس د هغه بیوع بیان کوی.په کوم کې چې په عوضین یا احدالعوضین باندې قبضه کول شرط دی.

### د بیع السلم شرعي حیثیت

السَّلَمُ عَقْدٌ مَشْرُوعٌ بِالْكِتَابِ وَهُوَ آيَةُ الْمُدَايَنَةِ، سلم یو داسې عقد دې.چه ( ددې جواز) په کتاب یعنی په آیت د مداینت سره مشروع دې فَقَدْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﵄: نو حضرت ابن عباس ﵄ فرمايي أَشْهَدُ أَنَّ اللّٰهَ تَعَالَى أَحَلَّ السَّلَفَ الْمَضْمُونَ زه ګواهي ورکوم.چه الله تعالی سلم مضمون حلال کړې دې وَأَنْزَلَ فِيهَا أَطْوَلَ آيَةٍ فِي كِتَابِهِ، وَتَلَا قَوْلَهُ تَعَالَى {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ} (۱) الْآيَةَ او په دې باره کې ئې پخپل کتاب کې ډیر لوې آیت نازل کړو.او ابن عباس ﵄ د الله تعالی قول {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ} الْآيَةَ تلاوت کړو.

**حل اللغة:** ① اطول-اوږد-② رخص-رخصت کړې-③ يابى-انکار کوی-④ الترك-پریخودل

**تشریح:-** علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.چه د بیع سلم جواز په کتاب الله، سنت رسول ﷺ او په اجماع امت سره ثابت دې.کتاب الله خو دادې.چه د الله تعالی ارشاد دې. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ وَلْيَكْتُبْ﴾ یعنی ای د ایمان خاوندانو اچې کله تاسو معامله کوئ د قرضو،د یو مقرر وخت پورې نودا لیکئ.په قول

(۱) أخرجه الحاكم في المستدرك (۲/۲۸۶)_

د رئيس المفسرين حضرت ابن عباس ﷺ دا ايت د عقدسلم په جواز باندې دلالت كوي.لكه چې ابن عباس ﷺ فرمائي. «أشهد أن الله أحل السلف المضمون وأنزل فيها أطول آية في كتابه» او بيا ابن عباس ﷺ هم دغه آيت تلاوت كړلو.د ابن عباس ﷺ په دې قول كې د مضمون نه مراد مؤجل دې.يا واجب في الذمه دې.دواړه صحيح دي.خكه چې مسلم فيه مؤجل وي.او د مسلم اليه په ذمه كې واجب وي.اوس به ژباړه دا وي.چه ،، گواهي وركوم،چه الله تعالى سلم مؤجل يا سلم واجب الذمه حلال كړې دې.او ددې په اړه كې ئې لوئې آيت مداينت نازل كړې دې،،د حضرت ابن عباس ﷺ ددې قول نه ښكاره ثابتيږي.چه دا آيت د بيع سلم په جواز باندې ښكاره دليل دې.

وَبِالسُّنَّةِ او د سنت نه هم ثابت دې وَهُوَ او هغه دادې مَا رُوِيَ "{أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعِ مَا لَيْسَ عِنْدَ الْإِنْسَانِ چې نبي كريم ﷺ د داسې شي د خرڅولو نه منع فرمائيلې ده.كوم چې د انسان سره نه وي وَرَخَّصَ فِي السَّلَمِ}(١) او د سلم اجازت ئې وركړې دې.

**تشريح:-** د نبي ﷺ د سنت نه هم ددې جواز معلوم دې هغه دا دې «أن النبي ﷺ نهى عن بيع ماليس عند الإنسان ورخص في السلم» يعنې رسول اكرم ﷺ د هغه شي د بيع نه منع فرمائيلې ده.كوم چې د انسان په ملك كې نه وي.او د سلم اجازت ئې وركړې دې.حاصل دا چه د معدوم شي بيع ممنوع ده.خو د بيع سلم اجازت ئې وركړې دې.په داسې حال كې چې مسلم فيه يعنې مبيع معدوم وي.

بعض حضراتو فرمائيلي دي.چه د صاحب هدايه رح بيان كړي حديث د دوې (دوه) حديثونو نه مركب دې.چه د «عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده» په روايت كې دي. «لاتبيع ماليس عندك» هغه شي مه خرڅوه كوم چې ستا په ملك كې نه وي.او د ابن عباس ﷺ په روايت كې دي. «قال قدم النبي ﷺ والناس يساغون في التمر السنة والسنتين والثلاث فقال من أسلف في شئ فليسلف في كيل معلوم و وزن معلوم الى أجل معلوم» ابن عباس ﷺ فرمائيلي دي.چه رسول الله ﷺ مديني منورې ته تشريف راوړلو.په داسې حال كې چې خلكو په كجوروكې يو يو كال،دوې (دوه) دوې (دوه) كاله،او درې درې كاله (په قرضو) بيع سلم كولو. نبي كريم ﷺ اوفرمائيل.چه كوم كس په څه شي كې بيع سلم اوكړي.نو ده له په كيل معلوم يا وزن معلوم كې د معلوم ميعاد پورې بيع سلم كول پكار دي.ددې روايت نه معلوميږي.چه بيع سلم جائز او مشروع ده.د عهد رسالت نه ترننه پورې د بيع سلم په جواز باندې د امت اجماع راروانه ده.نو د بيع سلم مشروعيت په كتاب الله،سنت رسول ﷺ او په اجماع امت درې واړو نه ثابته ده.

وَالْقِيَاسُ وَإِنْ كَانَ يَأْبَاهُ او قياس اگرچه د سلم د جواز انكار كوي وَلَكِنَّا تَرَكْنَاهُ بِمَا رَوَيْنَاهُ خو موږ دا د ذكرشوي حديث په وجه پريښودې دې وَوَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّهُ بَيْعُ الْمَعْدُومِ او وجه د قياس داده.چه په سلم كې مبيع معدوم (غيرموجود) وي. إِذِ الْمَبِيعُ هُوَ الْمُسْلَمُ فِيهِ خكه چې مبيع هم هغه شي دې.كوم چې مسلم فيه دې.

**تشريح:-** خو د قياس تقاضا داده.چه بيع سلم جائز نه وي.خكه چې په بيع سلم كې مسلم فيه مبيع وي.او مبيع معدوم دې.او د مبيع موجود غيرمملوك،يا د مبيع موجود مملوك غيرمقدورالتسليم بيع صحيح نه وي.نو د معدوم بيع به په درجه اولى صحيح نه وي.ددې دليل نه ثابتيږي.چه بيع سلم جائز نه وي.خو د حديث مذكور په وجه قياس پريخودلې شوې دې.

---

(٢) غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج لجواز بيع السلم رواية ابن عباس (رضي الله عنهما) قال قدم النبي ﷺ والناس يساغون في التمر السنتين والثلاث فقال من أسلف في شئ فليسلف في كيل معلوم و وزن معلوم إلى أجل معلوم وعزاه محقق نصب الراية أحمد شمس الدين إلى البخاري في السلم باب ١ ومسلم في المساقاة رقم ١٢٧ وأبوداود في البيوع باب ٥٥ رقم ٣٤٦٣ والنسائي في البيوع باب ٦٣ والترمذي في البيوع باب ٦٨ وابن ماجه في التجارات باب ٥٩ والدارمي في البيوع باب ٤٥ وأحمد في المسند (٢١٧/١)_



## په مكيلي او موزوني څيزونو كښې د بيع السلم حكم

قَالَ شَيْخُ ابوالحسن قدوري رح فرمايي وَهُوَ جَائِزٌ فِي الْمَكِيلَاتِ وَالْمَوْزُونَاتِ چې سلم په مكيلات او موزونات كې جائز دې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ "{مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ خكه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي.چه كوم كس په تاسو كې د سلم عقد اوكړي فَلْيُسْلِمْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ}(١) نو هغه له په معلوم پيمانه او معلوم وزن كې معلوم ميعاد پورې سلم كول پكار دي.

**تشريح:-** ابو الحسين قدوري رح فرمائي.چه عقدسلم په هر كيلي او وزني څيز كې جائز دې.دليل دادې.چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي. «من أسلم منكم فليسلم في كيل معلوم و وزن معلوم إلى أجل معلوم» يعنې څوك چې په تاسو كې عقدسلم اوكړي.نو په كيل معلوم او وزن معلوم كې دې معلوم ميعاد پورې سلم اوكړي.ددې حديث نه معلوميږي.چه عقدسلم په مكيلات او موزونات كې جائز دې.

وَالْمُرَادُ بِالْمَوْزُونَاتِ او د موزونات نه مراد غَيْرُ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ د دراهمو او دنانيرو نه علاوه دي.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رح فرمائي.چه په متن كې موزونات نه مراد د دارهم او دنانير نه علاوه نور شيان دي.ـه په دارهم يا دنانيرو كې عقدسلم اوكړې شو.نو ددې د موزوني كيدلو باوجود عقدسلم باطل دې.اوس ددې دوې (دوه) صورتونه دي.يو دا چې دارهم او دنانيرو كې عقدسلم اوكړې شو.يعنې دراهم او دنانير راس المال جوړ كړې شو.او هم دا ملسم فيه جوړ كړې شو.نو دا صورت بالاجماع ناجائز دې.خكه چې راس المال او مسلم فيه دواړه عوضونه كه دراهم دي.او كه دواړه عوضونه دنانير دي.نو د قدر او جنس باوجود نساء (قرض) او موندې شو.او كه يو عوض دراهم وي.او بل عوض دنانير وي.نو د اتحاد قدر سره نساء يعنې د مسلم فيه پور كيدل موجود شو.حالانكه په دې دواړه صورتونو كې نساء حرام او ناجائز ده. دوهم صورت دادې.چه د غنمو عقدسلم په دراهم يا دنانير كې اوكړې شو.يعنې غنم راس المال او دراهم يا دنانير مسلم فيه جوړ كړې شو.نو په دې صورت كې هم عقدسلم ناجائز دې.

لِأَنَّهُمَا أَثْمَانٌ،خكه چې دا دواړه ثمن دي وَالْمُسْلَمُ فِيهِ لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ مُثَمَّنًا او د مسلم فيه لپاره چونكه مبيع كيدل ضروري دي فَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ فِيهِمَا خكه به په دې دواړو كې سلم صحيح نه وي.

**تشريح:-** د عدم جواز دليل دادې.چه په دې صورت كې دراهم او دنانير مسلم فيه دي.حالانكه دا مسلم فيه جوړول صحيح نه دي.خكه چې مسلم فيه داسې شي كيدل پكار دي.كوم چې مبيع وي.او په متعين كاوه سره متعين كيږي.او دراهم او دنانير ثمن وي.په متعين كاوه سره نه متعين كيږي.نو هركله چې دراهم او دنانير ثمن وي.په متعين كولوسره نه متعين كيږي.نو ددې مسلم فيه جوړول به هم صحيح نه وي.او هركله چې ددې مسلم فيه جوړول صحيح نه دي.نو په دې كې به عقدسلم هم صحيح نه وي.

ثُمَّ قِيلَ يَكُونُ بَاطِلًا،(٢) بيا وئيلې شوي دي.چه سلم به باطل وي وَقِيلَ يَنْعَقِدُ بَيْعًا بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او وئيلې شوي دي.چه د پور ثمن په عوض به بيع منعقد وي تَحْصِيلًا لِمَقْصُودِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ بِحَسَبِ الْإِمْكَانِ،چې د عقد كونكو مقصود حتى الامكان حاصل شي وَالْعِبْرَةُ فِي الْعُقُودِ لِلْمَعَانِي او په عقود كې د معانو اعتبار كولې شي.

**حل اللغة:** ① ينعقد-منعقد كيږي-② مؤجل-نيته-③ العقود-جمع د عقد-④ الامكان-ممكن

**تشريح:-** خو اوس سوال دادې.چه هركله عقدسلم په دراهم او دنانير كې صحيح نشو.نو آيا د ثمن مؤجل په عوض

---

(١) تقدم تخريجه)_

(٢) القول الراجح هوهذا قول عيسى بن ابان رحمه الله كذا ردالمحتار(٢٢٦/٤) نقلاً عن القول الراجح(٧٢/٢)-

د رئیس المفسرین حضرت ابن عباس ﷺ دا ایت د عقدسلم په جواز باندې دلالت کوي.لکه چې ابن عباس ﷺ فرمائي. «أشهد أن الله أحل السلف المضمون وأنزل فيها أطول آية في كتابه» او بیا ابن عباس ﷺ هم دغه آیت تلاوت کړلو د ابن عباس ﷺ په دې قول کې د مضمون نه مراد مؤجل دې.یا واجب فی الذمه دې.دواړه صحیح دی.ځکه چې مسلم فیه مؤجل وی.او د مسلم الیه په ذمه کې واجب وی.اوس به ژباړه دا وی.چه ،، ګواهی ورکوم،چه الله تعالی سلم مؤجل یا سلم واجب الذمه حلال کړې دې.او ددې په اړه کې ئې لوئې آیت مداینت نازل کړې دې،، د حضرت ابن عباس ﷺ ددې قول نه ښکاره ثابتیږي.چه دا آیت د بیع سلم په جواز باندې ښکاره دلیل دې.

وَبِالسُّنَّةِ او د سنت نه هم ثابت دې وَهُوَ او هغه دادې مَا رُوِيَ "{ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعِ مَا لَيْسَ عِنْدَ الْإِنْسَانِ وَرَخَّصَ فِي السَّلَمِ }(١)" نبی کریم ﷺ د داسې شی د خرڅولو نه منع فرمائیلې ده.کوم چې د انسان سره نه وی اود سلم اجازت ئې ورکړې دې.

تشریح:- د نبی ﷺ د سنت نه هم ددې جواز معلوم دې هغه دا دې «أن النبي ﷺ نهى عن بيع ما ليس عند الإنسان ورخص في السلم» یعنی رسول اکرم ﷺ د هغه شی د بیع نه منع فرمائیلې ده.کوم چې د انسان په ملك کې نه وی.اود سلم اجازت ئې ورکړې دې.حاصل داچه د معدوم شی بیع ممنوع ده.خو د بیع سلم اجازت ئې ورکړې دې.په داسې حال کې چې مسلم فیه یعنی مبیع معدوم وی.

بعض حضراتو فرمائیلی دی.چه د صاحب هدایه رح بیان کړې حدیث د دوې (دوه) حدیثونو نه مرکب دې.چه د «عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده» په روایت کې دی. «لا تبع ما ليس عندك» هغه شی مه خرڅوه کوم چې ستا په ملك کې نه وی.او د ابن عباس ﷺ په روایت کې دی. «قال قدم النبي ﷺ والناس يساغون في التمر السنة والسنتين والثلاث فقال من أسلف في شيء فليسلف في كيل معلوم ووزن معلوم إلى أجل معلوم» ابن عباس ﷺ فرمائیلی دی.چه رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړلو.په داسې حال کې چې خلګو په کجورو کې یو یو کال،دوې (دوه) دوې (دوه) کاله،او درې درې کاله (په قرض) بیع سلم کولو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه کوم کس په څه شی کې بیع سلم اوکړی.نو ده له په کیل معلوم یا وزن معلوم کې د معلوم میعاد پورې بیع سلم کول پکار دی.ددې روایت نه معلومیږی.چه بیع سلم جائز او مشروع ده.د عهد رسالت نه ترننه پورې د بیع سلم په جواز باندې د امت اجماع راروانه ده.نو د بیع سلم مشروعیت په کتاب الله،سنت رسول ﷺ او په اجماع امت درې واړو نه ثابته ده.

وَالْقِيَاسُ وَإِنْ كَانَ يَأْبَاهُ او قیاس اګرچه د سلم د جواز انکار کوی وَلَكِنَّا تَرَكْنَاهُ بِمَا رَوَيْنَاهُ خو موږ دا د ذکرشوی حدیث په وجه پریښودې دې وَوَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّهُ بَيْعُ الْمَعْدُومِ او وجه د قیاس داده.چه په سلم کې مبیع معدوم (غیرموجود) دی. إِذِ الْمَبِيعُ هُوَ الْمُسْلَمُ فِيهِ ځکه چې مبیع هم هغه شی دې.کوم چې مسلم فیه دې.

تشریح:- خو د قیاس تقاضا داده.چه بیع سلم جائز نه وی.ځکه چې په بیع سلم کې مسلم فیه مبیع وی.او مبیع معدوم دې.او د مبیع موجود غیرمملوك،یاد مبیع موجود مملوك غیرمقدور التسلیم بیع صحیح نه وی.نو د معدوم بیع به په درجه اولی صحیح نه وی.ددې دلیل نه ثابتیږی.چه بیع سلم جائز نه وی.خو د حدیث مذکور په وجه قیاس پریښودلې شوې دې.

(٢) غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج لجواز بيع السلم رواية ابن عباس (رضي الله عنهما) قال قدم النبي ﷺ والناس يساغون في التمر السنتين والثلاث فقال من أسلف في شئ فليسلف في كيل معلوم و وزن معلوم إلى أجل معلوم وعزاه محقق نصب الراية أحمد شمس الدين إلى البخاري في السلم باب ١ ومسلم في المساقاة رقم ١٢٧ وأبوداود في البيوع باب ٥٥ رقم ٣٤٦٣ والترمذي في البيوع باب ٦٨ وابن ماجه في التجارات باب ٥٩ والنسائي في البيوع باب ٦٣ والدارمي في البيوع باب ٤٥ وأحمد في المسند (٢١٧/١)_



## په مکیلی او موزونی څیزونو کښې د بیع السلم حکم

قَالَ شیخ ابوالحسن قدوری رح فرمایي وَهُوَ جَائِزٌ فِي الْمَكِيلَاتِ وَالْمَوْزُونَاتِ چې سلم په مکیلات او موزونات کې جائز دې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ "{ مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ }(١)" ځکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی.چه کوم کس په تاسو کې د سلم عقد اوکړی نو هغه له په معلوم پیمانه او معلوم وزن کې معلوم میعاد پورې سلم کول پکار دی.

تشریح:- ابو الحسین قدوری رح فرمائی.چه عقدسلم په هر کیلی او وزنی څیز کې جائز دې.دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی. «من أسلم منكم فليسلم في كيل معلوم ووزن معلوم إلى أجل معلوم» یعنی څوك چې په تاسو کې عقدسلم اوکړی.نو په کیل معلوم او وزن معلوم کې دې معلوم میعاد پورې سلم اوکړی.ددې حدیث نه معلومیږی.چه عقدسلم په مکیلات او موزونات کې جائز دې.

وَالْمُرَادُ بِالْمَوْزُونَاتِ اود موزونات نه مراد غَيْرُ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ د دراهمو او دنانیرو نه علاوه دی.

تشریح:- علامه مرغینانی رح فرمائی.چه په متن کې موزونات نه مراد د دارهم او دنانیر نه علاوه نور شیان دی.ځکه په دارهم یا دنانیرو کې عقدسلم اوکړې شو.نو ددې د موزونی کیدلو باوجود عقدسلم باطل دې.اوس ددې دوې (دوه) صورتونه دی.یو دا چې دارهم او دنانیرو کې عقدسلم اوکړې شو.یعنی دراهم او دنانیر راس المال جوړ کړې شو.اوهم دا ملسم فیه جوړ کړې شو.نودا صورت بالاجماع ناجائز دې.ځکه چې راس المال او مسلم فیه دواړه عوضونه که دراهم دی.او که دواړه عوضونه دنانیر دی.نو د قدر اوجنس باوجود نساء (قرض) اوموندې شو.اوکه یو عوض دراهم وی.او بل عوض دنانیر وی.نو د اتحاد قدر سره نساء یعنی د مسلم فیه پور کیدل موجود شو.حالانکه په دې دواړه صورتونو کې نساء حرام او ناجائز ده. دوهم صورت دادې.چه د غنمو عقدسلم په دراهم یا دنانیر کې اوکړې شو.یعنی غنم راس المال او دراهم یا دنانیر مسلم فیه جوړ کړې شو.نو په دې صورت کې هم عقدسلم ناجائز دی.

لِأَنَّهُمَا أَثْمَانٌ ځکه چې دا دواړه ثمن دی وَالْمُسْلَمُ فِيهِ لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ مُثَمَّنًا او د مسلم فیه لپاره چونکه مبیع کیدل ضروری دی فَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ فِيهِمَا ځکه به په دې دواړو کې سلم صحیح نه وی.

تشریح:- د عدم جواز دلیل دادې.چه په دې صورت کې دراهم او دنانیر مسلم فیه دی.حالانکه دا مسلم فیه جوړول صحیح نه دی.ځکه چې مسلم فیه داسې شی کیدل پکار دی.کوم چې مبیع وی.او په متعین کاوه سره متعین کیږی.او دراهم او دنانیر ثمن وی.په متعین کاوه سره نه متعین کیږی.نو هرکله چې دراهم او دنانیر ثمن وی.په متعین کولو سره نه متعین کیږی.نو ددې مسلم فیه جوړول به هم صحیح نه وی.او هرکله چې ددې مسلم فیه جوړول صحیح نه دی.نو په دې کې به عقدسلم هم صحیح نه وی.

ثُمَّ قِيلَ يَكُونُ بَاطِلًا (٢) بیا وئیلی شوی دی.چه سلم به باطل وی وَقِيلَ يَنْعَقِدُ بَيْعًا بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او وئیلی شوی دی.چه د پور ثمن په عوض به بیع منعقد وی تَحْصِيلًا لِمَقْصُودِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ بِحَسَبِ الْإِمْكَانِ، چې د عقد کونکو مقصود حتی الامکان حاصل شی وَالْعِبْرَةُ فِي الْعُقُودِ لِلْمَعَانِي او په عقود کې د معانو اعتبار کولې شی.

حل اللغة: ① ينعقد-منعقد کیږی-② مؤجل-نیتیه-③ العقود-جمع د عقد-④ الامکان-ممکن

تشریح:- خو اوس سوال دادې.چه هر کله عقدسلم په دراهم او دنانیر کې صحیح نشو.نو آیا د ثمن مؤجل په عوض

(١) تقدم تخريجه_

(٢) القول الراجح هو هذا قول عيسى بن ابان رحمه الله كذا ردالمحتار(٢٢٦\٤) نقلاً عن القول الراجح(٧٢\٢)-

غنمو کي بیع منعقد کیږي.اوکه نه؟ یعني ایا دا کیدلې شي.چه غنم مبیع جوړ کړې شي.او دارهم او دنانیر پور ثمن جوړ کړې شي.اودا اوونیلې شي.چه دا د پور ثمن په عوض د غنمو بیع ده؟

په دې اړه کي دعیسی ابن ابان رح قول دې.چه دا بیع بالکل باطل ده.یعني دا به نه عقدسلم وي.اونه به د ثمن موجل په عوض د غنمو بیع وي.اود ابوبکر اعمش رح قول دادې.چه دا د ثمن موجل په عوض د غنمو بیع ده.یعني که دا بیع سلم ګرځول ممکن نه دی.نودا به ونیلې شي.چه دا ثمن موجل په عوض د غنمو بیع ده.یعني داده.چه په عوضینوکې د یومقصود په غنمو باندې قبضه کول دی.اود یو مقصود په دراهم او دنانیر باندې قبضه کول دی.اودا مقاصد د بیع سلم نه بغیر د ثمن موجل په عوض د بیع په انعقاد سره هم حاصلیږي.نو حتی الامکان د عاقدینو مقصود حاصلولو لپاره د ثمن موجل په عوض د بیع انعقاد اومنلې شو.په داسې حال کي چې په عقودکي د معانیو او مقاصدو اعتبار کولې شي.د الفاظو اعتبار نشي کیدلې.

وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او رومبنې قول صحیح دې لِأَنَّ التَّصْحِيحَ إِنَّمَا يَجِبُ فِي مَحَلٍّ أَوْجَبَا الْعَقْدَ فِيهِ خکه چې عقد صحیح جوړول هم په هغه محل کي واجبیږي.په کوم کي چې دواړه عقد واجب شوی دی وَلَا يُمْكِنُ ذَٰلِكَ حالانکه دا دلته کي ممکن نه ده.

تشریح:- علامه مرغیناني رح فرماني.چه رومبې قول یعني د عیسی ابن ابان رح قول زیات صحیح دې.خکه چې عقدصحیح جوړول هم په هغه محل کي واجبیږي.په کوم کي چې عاقدینو عقدمنعقد کړې دې.حالانکه دا دلته کي ممکن نه ده.خکه چې عقدمنعقد شوې دې په دراهم او دنانیر کي.او دراهم او دنانیر کله هم مبیع نشي کیدلې.او دراهم او دنانیر مبیع خکه نشي کیدلې.چه دا دواړه مورزاده (پیدانشي) طور باندې ثمن دی.او مسلم فیه مبیع وي.حاصل داچه عاقدینو دراهم او دنانیر مسلم فیه جوړ کړي دی.حالانکه دراهم او دنانیر مسلم فیه نشي کیدلې خکه به دا عقد نه وي.اوچونکه عقدسلم بدلول،اود ثمن موجل په عوض بیع کول هم جائز نه دی.خکه به دا بیع هم منعقد نه وي.نو هرکله چې دواړه صورتونه ناممکن دی.نو په دراهم او دنانیر کي به بیع سلم کول بالکل باطل وي.

قَالَ فرمایي وَكَذَا فِي الْمَذْرُوعَاتِ اوهم دغه ډول په ګزونو سره په ناپ کولوخیزونوکي سلم جائز دې.

تشریح:- ابو الحسین قدوري رحمه الله فرماني.چه عقدسلم څنګه په مکیلات او موزونات کي جائز دې.دغه ډول عقدسلم په هغه خیزونوکي هم جائز دې.کوم چې په ګزونو سره په ناپ خرڅولې شي.

**په مذروعي اوعددي متقارب کښي د بیع سلم حکم**

لِأَنَّهُ يُمْكِنُ ضَبْطُهَا بِذِكْرِ الذَّرْعِ وَالصِّفَةِ وَالصَّنْعَةِ خکه چې ددې خیزونو معلومیدل د ناپ، صفت، او صنعت ذکر کاوه سره ممکن دي.

حل اللغة: ① الذرع-ګز\ناپ-② الصنعة-کاریګر-③ ترتفع-پورته کیږي-④ یتحقق-ثابتیږي

تشریح:- دلیل دادې.چه د عقدسلم صحیح کیدلو لپاره د درې خیزونومعلومیدل ضروري دی ① مقدار ② صفت ③ صنعت (کاریګري)

وَلَابُدَّ مِنْهَا او ددې خبرو بیانول ضروري دی لِتَرْتَفِعَ الْجَهَالَةُ چې جهالت لرې شي فَيَتَحَقَّقَ شَرْطُ صِحَّةِ السَّلَمِ اود سلم د صحت شرط متحقق شي.

تشریح:- او ددې درې واړه خیزونو معلومیدل خکه ضروري دی.چه د مسلم فیه جهالت لرې شي.اود سلم د صحت شرط متحقق شي.او په مذروعات کي دا درې واړه شیان معلومیږي.په دې طریقه چې ددې په طول اوعرض بیانولو سره به مقدار معلوم شي.اود بنه والی یا ردی کیدلو بیانولو سره به صفت معلوم شي.او نرې یا پیړوالې بیانولو سره به صنعت یعني کاریګري معلومه شي.نو هرکله چې ذکرشوي درې واړه شیان معلومیدلې شي.یعني دا په علم کي راوستل ممکن دی.نود مذروعاتو بیع سلم هم جائز ده.

وَكَذَا فِي الْمَعْدُودَاتِ الَّتِي لَا تَتَفَاوَتُ او هم دغه ډول د شمار په داسې خیزونوکي (سلم جائز دي) په کوم کي [illegible]



(کمي زیاتي) نه کیږي كَالْجَوْزِ وَالْبَيْضِ لکه هګۍ او غوزان.

حل اللغة: ① المعدودات-جمع د معدود کوم شئ چې شمارلې شي-② الجوز-غوز-③ البیض-هګۍ-④ المتقارب-نژدې

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرماني.چه کوم شیان په شمار سره خرڅولې شي.او ددې په افرادو کي د مالیت په اعتبارسره تفاوت نه وي.لکه غوزان،او هګۍ.ددې بیع سلم هم جائز ده.

لِأَنَّ الْعَدَدِيَّ الْمُتَقَارِبَ مَعْلُومُ الْقَدْرِ خکه چې د عددی متقارب مقدار معلوم دې مَضْبُوطُ الْوَصْفِ او ددې صفت هم (په بیان) سره معلومیدې شي مَقْدُورُ التَّسْلِيمِ او ددې سپارل هم ممکن دی فَيَجُوزُ السَّلَمُ فِيهِ په دې جه په دې کي سلم هم جائز دې.

تشریح:- خکه چې داسې عددی شیان چې پخپلوکي قریب قریب وي.د هغې مقدار هم معلوم وي.او په بیانولوسره ددې وصف هم معلومیدلې شي.او ددې سپارل هم ممکن دی.اود کوموخیزونوچه مقدار معلوم وي.او ددې وصف بیانولې شي.او ددې سپارل ممکن وي.نود هغې بیع سلم جائز وي.خکه به د عددی متقاربه بیع جائز وي.

وَالصَّغِيرُ وَالْكَبِيرُ فِيهِ سَوَاءٌ لِاصْطِلَاحِ النَّاسِ عَلَىٰ إِهْدَارِ التَّفَاوُتِ اود تفاوت په اعتبار نه کاوه باندې د خلګو د اتفاق کاوه په وجه (ددې) وړوکې او غټ برابر وي.

حل اللغة: ① الصغیر-وړکې-② الکبیر-لونې-③ الناس-خلق-④ اهدار-لغو کول

تشریح:- په عددی خیزونوکي وړوکې او غټ برابر وي.خکه چې ددې په مینځ کي د تفاوت اعتبار نه کاوه باندې د خلګو اتفاق دې.مثلاً د چرګو په هګوکې اګرچه معمولي شان تفاوت وي.خو خلګ بالاتفاق ددې تفاوت اعتبار نه کوي.یعني داسې نه کیږي.چه د چرګې هګۍ لږه شان غټه وي.نو ددې قیمت زیات وي.اوکه لږه شان وړه وي.نو ددې قیمت کم وي.بلکه د قیمت په اعتبارسره واړه برابر وي.

بِخِلَافِ الْبِطِّيخِ وَالرُّمَّانِ په خلاف د خربوزې او انار،

حل اللغة: ① البطیخ-خربوزه-② الرمان-انار-③ البیض-هګۍ-④ النعامة-شترمرغ

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرماني.چه د خربوزې او انارو بیع سلم جائز نه دې.دغه ډول د کدو،تینډې،د خاروو د سرونو او پښو بیع سلم جائز نه ده.

لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ آحَادُهُ تَفَاوُتًا فَاحِشًا خکه چې ددې په افرادو کي ډیر زیات تفاوت وي وَبِتَفَاوُتِ الْآحَادِ فِي الْمَالِيَّةِ يُعْرَفُ الْعَدَدِيُّ الْمُتَقَارِبُ او په مالیت کي د افرادو د متفاوت کیدلو په وجه عددی شئ متفاوت معلومیږي.

تشریح:- خکه چې د قیمت په اعتبار سره ددې په افرادو کي ډیر زیات تفاوت وي.او خلګ ددې په مینځ کي د تفاوت اعتبار هم کوي.لکه چې موږ ګورو.چه یوه خربوزه په یوه روپۍ وي.او دویمه په دوې (دوه) روپۍ وي.دغه ډول یو انار په کم قیمت باندې ملاویږي.او دوهم ددې نه په زیات قیمت باندې ملاویږي.اود قیمت په اعتبار سره چې د کومو خیزونو په افرادوکي تفاوت وي.د هغې بیع سلم جائز نه وي.خکه به د خربوزې او انار وغیره خیزونو بیع سلم جائز نه وي.اوس عددی متقارب او په عددی متفاوت کي قاعده دا شوه.چه د عددی خیزونو په افرادوکي د قیمت په اعتبارسره تفاوت وي.نوهغه شئ به عددی متقارب وي.او که تفاوت نه وي.نوهغې ته به عددی متقارب وائي.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي بَيْضِ النَّعَامَةِ چې د شترمرغ په هګوکي بیع سلم جائز نه ده لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ آحَادُهُ فِي الْمَالِيَّةِ خکه چې ددې افراد په مالیت کي متفاوت وي.

تشریح:- دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دادې.چه د شتر مرغ د هګوبیع سلم جائز نه ده.اود عدم جواز وجه داده.چه د شترمرغ هګۍ د مالیت په اعتبار سره متفاوت وي.او وړاندې تیرشوی دی.چه د عددی متفاوت بیع سلم جائز نه ده.خکه به د شترمرغ د هګو بیع سلم جائز نه وي.

**ثُمَّ كَمَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِيهَا عَدَدًا** بیا په عددي متقاربه کې بیع سلم لکه څنګه چې په شمارلو سره جائز دې **يَجُوزُ كَيْلًا** (۱) دغه ډول په پیمانې سره هم جائز دې.

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د معدودات متقاربه بیع سلم چې لکه څنګه په شمارلو سره جائز ده.دغه ډول په کیل کاوه سره هم جائز ده.نوکه د یو روپۍ یو قفیز هګو بیع سلم اوکړې شو.نوجائز دې.

**وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله** او امام زفر رحمه الله فرمائیلي دي **لَا يَجُوزُ كَيْلًا** چې په پیمانه سره جائز نه دې **لِأَنَّهُ عَدَدِيٌّ وَلَيْسَ بِمَكِيلٍ** څکه چې دا شئ عددي دې.کیلي نه دې.

**تشریح:-** حضرت امام زفر رحمه الله فرمائي.چه په معدودات متقاربه کې په شمارلوسره بیع سلم جائز ده.خو په کیل سره جائز نه ده.څکه چې کوم شیان د معدودات متقاربه د قبیلې څنې دي.هغه واړه عددي دي.کیلي نه دي.او کوم شیان چې کیلي نه وي.د هغې بیع سلم د کیل په ذریعه څنګه صحیح کیداې شي.نو ثابته شوه.چه د معدودات متقاربه بیع سلم په کیل سره ناجائز ده.

**وَعَنْهُ** اود امام زفر رحمه الله نه یو روایت دادې **أَنَّهُ لَا يَجُوزُ عَدَدًا أَيْضًا لِلتَّفَاوُتِ** چې د تفاوت په وجه په شمارلو سره هم جائز نه دې.

**تشریح:-** دحضرت امام زفر رحمه الله یو روایت دادې.چه د معدودات متقاربه بیع سلم نه کیلاً جائز دې.اونه عدداً جائزدې.څکه چې د معدودات متقاربه د افرادو په مینځ کې تفاوت وي.که تفاوت معمولي وي.او هغه عددي شئ چې د هغې په أفرادوکې تفاوت وي.د هغې بیع سلم چونکه عدداً (په شمار) سره هم جائز نه ده.په دې وجه د معدودات متقاربه بیع سلم عدداً هم جائز نه ده.

**وَلَنَا** زمونږ دلیل دا دې **أَنَّ الْمِقْدَارَ مَرَّةً يُعْرَفُ بِالْعَدَدِ** چې مقدار کله په شمار سره معلومیږي **وَتَارَةً بِالْكَيْلِ**،او کله په پیمانه سره **وَإِنَّمَا صَارَ مَعْدُودًا بِالِاصْطِلَاحِ فَيَصِيرُ مَكِيلًا بِاصْطِلَاحِهِمَا** او د دې عددي کیدل صرف د خلو په اصطلاح سره دي

**تشریح:-** زمونږ دلیل دادې.چه مقدار کله په شمارلو سره پیژندلې کیږي.او کله د کیل په ذریعه معلومیږي.نود معدودات متقاربه په شمار او کیل دواړو سره معلومول ممکن دي.او هرکله چې په دواړو سره معلومول ممکن دي.نو دواړو سره بیع سلم کول جائز دي.یعني د معدودات متقاربه بیع عدداً هم جائز ده.او کیلاً هم جائز ده.او پاتې شو ددې عددي کیدل،نودا د نص په حکم سره نه دې.بلکه د خلګو د اتفاق په وجه عددي شوي دي. نو ګویا مدار د خلګو په اتفاق باندې شو.نو لکه څنګه چې د خلګو په اتفاق یو شئ عددي شوې دې.دغه ډول به د عاقدینو په اتفاق سره دا شئ کیلي شي.او هرکله چې عددي شئ د عاقدینو په اتفاق سره کیلي شو.نود هغې بیع سلم چې څنګه عدداً جائز دې.دغه ډول به کیلاً هم جائز وي.

**وَكَذَا فِي الْفُلُوسِ عَدَدًا** او دغه دول په پیسو کې هم د شمار په اعتبار سره سلم جائز دې. **وَقِيلَ هَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ** (۲) او ووئیلي شوي دي چې دا صرف د شیخینو په نزده

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د فلوس بیع سلم هم عدداً جائز ده.دا حکم په جامع صغیر کې داختلاف نه بغیر ذکر دې.خو علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د بعض مشائخو رحمهم الله قول دادې.چه د جواز دا حکم د شیخینو رحمهما الله په نیز دې.د امام محمد رحمه الله په نیز د فلوس بیع سلم ناجائز ده.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ لَا يَجُوزُ** اود امام محمد رحمه الله په نیز جائز نه ده **لِأَنَّهَا أَثْمَانٌ** څکه چې دا اثمان دي

(۱) القول الراجح هو هذا ظاهر الرواية كذا في فتح القدير(۲۰۸\۶) وردالمحتار(۲۲۶\۱٤) نقلاً عن القول الراجح (۷۳\۲)-
(۲) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۲۰۸\۶) والبحر الرائق (۱۵۶\۶) وردالمحتار(۲۲۷\۱٤) والهندية (۱۸۱\۳) نقلاً عن القول الراجح (۷٤\۲)-



**تشریح:-** د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه فلوس ثمن وي.او وړاندې تیرشوي دي.چه د ثمن بیع سلم ناجائز وي.په دې وجه د فلوس بیع سلم ناجائز ده.

**وَلَهُمَا** شیخینو رحمهما الله دلیل دا دې **أَنَّ الثَّمَنِيَّةَ فِي حَقِّهِمَا بِاصْطِلَاحِهِمَا** چې د عاقدینو په حق کې پیسې ثمن کیدل د دوی په اصطلاح سره دي **فَتَبْطُلُ بِاصْطِلَاحِهِمَا** نود دوی په اصطلاح به ثمن باطل شي

**تشریح:-** زمونږ دلیل دادې.چه د فلوس ثمن کیدل،د عاقدینوپه حق کې ددې دواړو په اتفاق سره ثابت وو.څکه چې بل کس ته په دوی باندې هیڅ ولایت نشته.نو هرکله چې د فلوس ثمن کیدل ددې دواړو په حق کې ددوی په اتفاق سره وو.نو هم ددوی په اتفاق سره به ثمن کیدل باطل شي.او هرکله چې د فلوس ثمن کیدل باطل شو.نو فلوس ددوی په حق کې سامان شو.اود سامان بیع سلم جائز دې.نود فلوس بیع سلم به جائز وي.

**وَلَا تَعُودُ وَزْنِيًّا** او بیا به وزني کیږي نه **وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ** او مونږ دا وړاندې ذکر کړي دي

**تشریح:-** دا عبارت دیو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه فلوس د ثمن کیدلو نه وړاندې چونکه د پیتلو او دهات ټکړې وي.څکه د موزونات د قبیلې څنې وو.خو چې کله ددې په ثمن کیدلو باندې اتفاق اوکړې شو.نودا عددي شو.نو هرکله چې عاقدینو ددې د ثمنیت په باطلولو باندې اتفاق اوکړلو.نودا عددي شو.نو هرکله چې د عاقدینو ددې ثمنیت په باطلولو باندې اتفاق کاوه سره ددې ثمن کیدل باطل شو.نو ددې عددي کیدل به هم باطل شي.څکه چې فلوس د ثمنیت په وجه عددي شوي وو.خوچه کله فلوس ثمن پاتې نشو.نو عددي به هم پاتې نه وي.بلکه په زوړ حالت به وزني شي.او هرکله چې فلوس عددي پاتې نشو.بلکه وزني شو.نو ددې بیع سلم په شمار سره جائز کیدل پکار نه وو.بلکه په وزن سره جائز کیدل پکار وو.حالانکه تاسو فرمائیلي دي.چه د فلوس بیع سلم عدداً جائز دې.

ځواب* ددې ځواب دادې.چه عاقدینو د فلوس ثمن کیدلو اعتبار نه اعراض کړې دې.ددې د عددي کیدلو اعتبار نه ئې اعراض نه دې کړې.یعني عاقدینو د فلوس ثمن کیدل باطلولو باندې اتفاق کړې دې.ددې عددي کیدل باطلولو باندې ئې اتفاق نه دې کړې.اود فلوس ثمنیت باطلولو نه ددې عددي کیدلو ابطال نه لازمیږي.او هرکله چې د فلوس ثمنیت باطلولو سره د عددي کیدلو ابطال نه لازمیږي.نو فلوس به د ثمن نه کیدلو باوجود عددي وي.وزني به نه وي.او هرکله چې فلوس عددي پاتې شو.واپس عددي نشو.نود فلوس بیع سلم به هم عدداً جائز وي.ددې تفصیل په،،باب الربوا،،کې د،، بیع الفلس بالفلسین،، په مسئله کې تیرشوې دې.

## په حیوان (څاروي) کښې د بیع سلم حکم

**وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِي الْحَيَوَانِ** اود حیوان بیع سلم جائز نه ده.

**تشریح:-** په څاروکې د بیع سلم یوصورت دا دې چې د مطلق څاروي بیع سلم شوې وي.یعني نه ئې ددې جنس بیان کړې وي.نه ئې عمر بیان کړې.نه ئې صفت او نه ئې ددې نوع بیان کړې وي. په دې صورت کې بالاتفاق بیع سلم ناجائز ده. دوهم صورت دا دې چې ذکرشوي شیان بیان شوې وي.او بیع سلم شوې وي.په دې صورت کې زمونږ په نیز ناجائز ده.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ:** او امام شافعي رحمه الله فرمایي **يَجُوزُ** چې جائز ده **لِأَنَّهُ يَصِيرُ مَعْلُومًا بِبَيَانِ الْجِنْسِ وَالسِّنِّ وَالنَّوْعِ وَالصِّفَةِ، وَالتَّفَاوُتُ** څکه چې حیوان په جنس، نوع ، عمر او وصف بیانولو سره معلومیږي. **بَعْدَ ذَلِكَ يَسِيرًا** او ددې نه روسته تفاوت خفیف دې **فَأَشْبَهَ الثِّيَابَ** نودا د کپړو مشابه شو.

**حل اللغة:** ① یصیر-ګرځي-② السن-عمر-③ التفاوت-فرق-④ یسیر-کم

**تشریح:-** ذکرشوې صورت د امام شافعي رحمه الله په نیز جائز ده.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دي.

دامام شافعي رحمه الله دلیل دادې.چه هرکله د څاروي جنس بیان کړې شو.مثلاً اووئیلي شو.چه دا به اوښ وي.یا به ګامیښه (میخه) وي.او عمر ئې بیان کړې شو.مثلاً چې یو غابښې وي.یا دوې (دوه) غابښې وي.او نوع بیان کړې شوه.مثلاً اووئیلي شو.چه دا بختي وي.یا عربي وي.او صفت ئې بیان کړې شو.مثلاً اووئیلي شو.چه بنه غټه پټه او

تندرسته وي يا كمزوري او ډنګره وي.نود مسلم فيه ماليت به معلوم شي.او هرهغه شئ چې ددې اوصاف بيانولوسره معلوميدلې شي.او پيژندلې شي.د هغې بيع سلم جائز وي.په دې وجه د جنس، سن ، نوع او صفت بيانولونه روسته به د ځاروي بيع سلم هم جائز وي.

او پاتې شودا سوال چې د ځاروي جنس، سن ، نوع او صفت بيانولو باوجود تفاوت پاته كيږي.نود ځاروي بيع سلم جائز كيدل نه وو پكار؟ ددې خواب دادې.چه د ذكرشوي څلور څيزونو بيانولو نه روسته چې كوم تفاوت پاته كيږي.هغه ډير كم او معمولي وي.نودا د كپړو مشابه شو.يعنې لكه څنګه چې كپړو جنس، نوع او صفت پيژوالي نري والي بيانولو سره كيږه يعنې مسلم فيه پيژندلې شي.او ددې بيع سلم بالاتفاق جائز دې.سره ددې چې لږ شان تفاوت پاته كيږي.دغه ډول به د ځاروي بيع سلم هم جائز وي.

وَلَنَا او زموږ دليل دادې **أَنَّهُ بَعْدَ ذِكْرِ مَا ذَكَرَ يَبْقَى فِيهِ تَفَاوُتٌ فَاحِشٌ فِي الْمَالِيَّةِ بِاعْتِبَارِ الْمَعَانِي الْبَاطِنَةِ** چې د ذكرشوي امورو ذكر كاوه نه روسته چونكه په حيوان كې د باطني امورو په اعتبار سره په ماليت كې ډير لوې تفاوت پاته كيږي **فَيُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ** په دې وجه به مفضي الى المنازعه وي.

**تشريح:-** زموږ دليل دادې.چه د ځاروي ذكرشوي څلور صفتونه يعنې جنس، سن ، نوع او صفت بيانولونه روسته په ځاروكي دماليت او قيمت په اعتبارسره ډير لوئې تفاوت پاته كيږي.اودا تفاوت د ځاروو باطني امورو په وجه وي.مثلاً د اس خلاص قدم (تيز رفتار) ،او فرمانبرداره كيدل،د غلام هوښيار او عقلمند كيدل،د وينځې ښانسته كيدل،داسې كارونه دي.چه په دې كې د خلګو شوق زياتيدلو سره قيمت زياتيږي.اود ذكرشوي كارونوپه نه موجوديدلو سره قيمت كميږي.هم دا وجه ده.چه ډير څله دوې (دوه) اسونه په جنس، سن، نوع او صفت كې برابر وي.خود باطني امورو په وجه د يو قيمت ډيرزيات اود بل كم وي.نوهم ددې باطني امورو په وجه د مسلم فيه سپارلو په وخت جګړه پيدا كيږي.او په كوم عقدكې چې د جګړې پيدا كيدلو امكان وي.هغه عقدفاسد وي.په دې وجه موږ اووئيل.چه دځاروو بيع سلم ناجائز او فاسد دې.

بِخِلَافِ الثِّيَابِ په خلاف د كپړو **لِأَنَّهُ مَصْنُوعُ الْعِبَادِ** ځكه چې كپړې د بنده ګانو تيار كړې شوې دي **فَقَلَّمَا يَتَفَاوَتُ الثَّوْبَانِ إِذَا نُسِجَا عَلَى مِنْوَالٍ وَاحِدٍ** نو كله چې دا كپړې په يو آله سره جوړې كړې شي.نو په دې كې ډير كم تفاوت وي.

**حل اللغة:** ① الثياب-جمع د ثوب،جامه-② مصنوع-جوړ كړې شو-③ منوال-آله-④ الحيوان-ځاروي

**تشريح:-** اود امام شافعي رحمه الله ځاروي په كپړو باندې قياس كول صحيح نه دي.ځكه چې كپړې د بندګانو تيارشوي دي.او بندګان چې كله دوې (دوه) تهانونه د يو سوت (تار) او په يوه آله په يوه طريقه جوړوي.نود ماليت په اعتبارسره په دې كې ډيركم تفاوت وي.اود ځاروو په پيداكولوكې بندګانو ته هيڅ دخل نه وي.بلكه الله تعالى په خپل قدرت سره د يوجنس دوې (دوه) ځاروي پيدا كوي.او په دې دواړو كې د ماليت په اعتبار سره ډير لوئې تفاوت وي.نو ددې توپير په موجودګئ كې ځاروي په كپړو باندې قياس كول څنګه صحيح كيداې شي.

وَقَدْ صَحَّ اودا خبره صحيح ده. {**أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ السَّلَمِ فِي الْحَيَوَانِ**}[1] چې نبي كريم ﷺ د حيوان دبيع سلم نه منع فرمانيلې ده. **وَيَدْخُلُ فِيهِ جَمِيعُ أَجْنَاسِهِ** او په لفظ د حيوان كې به ددې واړه اجناس داخل وي **حَتَّى الْعَصَافِيرُ** تردې چې چڼچڼې هم (داخليږي).

**تشريح:-** زموږ د اړخه نقلي دليل دادې.چه جناب رسول الله ﷺ د حيوان بيع سلم نه منع فرمانيلې ده.او په لفظ د حيوان كې ددې واړه اجناس داخليږي.تردې چې كونترې او چڼچڼې هم داخليږي.يعنې د كونترو او چڼچڼو پشان ځناورو بيع سلم به هم ددې نص په وجه جائز نه وي.اګرچه ددې په افرادوكې زيات تفاوت نه وي.

(١) من حديث ابن عباس أخرجه الحاكم في المستدرك (٥٧/٢) والدارمي في سننه (٧١/٣) رقم ٢٦٨ـ



## د حيوان د اندامونو د بيع سلم حكم

قَالَ وَلَا فِي أَطْرَافِهِ كَالرُّءُوسِ وَالْأَكَارِعِ اودځاروي طرفونه لكه سر او پښو كې هم (بيع سلم) جائز نه ده **وَالْأَكَارِعِ لِلتَّفَاوُتِ فِيهَا** ځكه چې په دې څيزونوكې تفاوت وي **إِذْ هُوَ عَدَدِيٌّ مُتَفَاوِتٌ** ځكه چې دا شيان عددي متفاوت دي **لَا مُقَدِّرَ لَهَا** ددې لپاره هيڅ اندازه نشته.

**حل اللغة:** ① اطراف-جمع د طرف،اندام-② الرؤوس-جمع د راس،سر-③ الاكارع-پښې-④ الجلود-جمع د جلد،څرمن

**تشريح:-** ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه د ځاروو د سرونو او پښو بيع سلم جائز نه ده.ځكه چې د ځاروو په سرونو او پښو كې د غټ والي او وړكوټي والي په وجه په ماليت كې ډيرلوئې تفاوت وي.نوګويا دا عددي متفاوت شو.ددې لپاره څه اندازه نشي لګولې كيدلې.او وړاندې تيرشوي دي.چه د عددي متفاوت بيع سلم جائز نه وي.ځكه به د ځاروو د سرونو او پښو بيع سلم جائز نه وي.

قَالَ فرمايي **وَلَا فِي الْجُلُودِ عَدَدًا** او د څرمنو بيع سلم په شمار سره،

**تشريح:-** ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه د ځاروو په څرمنوكې هم عدداً بيع سلم جائز نه ده.ځكه چې څرمنې عددي دي.او په دې كې بعض څرمنې غټې او بعض وړې وي.دغه ډول د بعض پلنوالې كم اود بعض زيات وي.بهرحال ددې تفاوت په وجه ددې په ماليت كې هم ډير لوئې تفاوت وي.او وړاندې تيرشوي دي.چه د عددي متفاوت بيع سلم د ،،مفضى الى المنازعه،، كيدلو په وجه چونكه ناجائز وي.ځكه به د څرمنو بيع سلم هم ناجائز وي.

علامه بدرالدين عيني رحمه الله په بنايه كې ليكلي دي.چه «ولا في الجلود عددا» كې د عدداً قيدنه به دا نشي ګڼرلې.چه د څرمنو بيع سلم وزناً جائز ده.ځكه چې څرمنې عددي دي.نوهركله چې ددې بيع سلم عدداً جائز نه دې.نو وزناً به په طريق اولى جائز نه وي.ځكه چې په عرف عام كې د څرمنو وزن نه كيږي.

امام مالك رحمه الله فرمانيلي دي.چه د څرمنو بيع سلم جائز ده.ځكه چې څرمنې مقدورالتسليم هم دي.اود وزن اوصفت په ذريعه معلوم المقدار هم دي.اوكوم شئ چې مقدورالتسليم او معلوم المقدار وي.د هغې بيع سلم جائز وي.ځكه به د څرمنې بيع سلم جائز وي.

خو زموږ د اړخه ځواب وړاندې تيرشوې دې.چه څرمنې چونكه عادتاً نشي وزن كولې.په دې وجه وزناً بيع سلم جائز نه ده.اود څرمنو اخستل خرڅول عدداً كيږي.خو چونكه څرمنې عددي متفاوت دي.اود عددي متفاوت بيع سلم د ،،مفضى الى المنازعه،، كيدلو په وجه ناجائز وي.ځكه به د څرمنو بيع سلم عدداً هم ناجائز وي.

**وَلَا فِي الْحَطَبِ حُزَمًا وَلَا فِي الرَّطْبَةِ جُرَزًا** اود لرګو بيع سلم په ګيډو سره،اود ګيا بيع سلم په ګيډو سره جائز نه ده **لِلتَّفَاوُتِ فِيهَا** ځكه چې (ددې په افرادوكې) تفاوت وي.

**حل اللغة:** ① الحطب-لرګي-② حزم-ګيډې-③ الرطبة-تازه ګياه-④ جرز-جدا

**تشريح:-** ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه د سوزولو د لرګو بيع سلم د ګيډو په حساب سره اود سبزيانو اود ځاروو د وندې بيع سلم په شكرئ اود ګيډو په حساب سره جائز نه ده.مثلاً يو كس د سل روپو راس المال په عوض لس ګيډئ خاشي (خشاك) مسلم فيه مقرر كړلو.ياني د سل روپو راس المال په عوض لس ګيډئ سبزي يا ګيا مسلم فيه مقرر كړله.نودا ناجائز ده.ځكه چې په ګيډو او پنډ كې د اوږدوالي او لنډوالي اود پيړوالي په حساب سره ډير لوئې تفاوت وي.مثلاً يوه ګيډئ خو هغه ده.چه په هغې كې دوې (دوه) دوې (دوه) ګزه اوږده لرګي تړلي شوي دي.او يوه ګيډئ هغه ده.چه په هغې كې يو يو ګز اوږده لرګي تړلي شوي دي.دماليت په اعتبار سره دا دواړه ګيډئ څنګه برابر كيدلې شي.او دغه ډول يوه ګيډئ هغه ده.كومه چې په دوې (دوه) ګزه رسئ كې تړلې شوې ده.او يوه ګيډئ

هغه ده.کومه چې په یوګز رسۍ کې ترلې شوې ده.ښکاره ده.چه دا دواړه ګیډۍ په مالیت کې برابر نشی کیدلې.نو چونکه په ګیډو او پنډ کې تفاوت وی.ځکه به د مسلم فیه مجهول کیدلو په وجه ددې بیع سلم هم جائز نه وی.

إلا إذا عرف ذلك بأن يبين له طول خو کله چې معلوم وی.په دې طریقه چې دهغه شۍ اوږدوالې معلوم وی ما يشد به الحزمة أنه شبر به کوم شی سره ګیډۍ ترلې شی.چه یو لیشت دې أو ذراع یا یوګز دې فحينئذ يجوز نو دغه وخت به بیع سلم جائز وی. إذا كان على وجه لا يتفاوت کله چې په داسې طریقه وی.چه په دې کې تفاوت نه کیږی.

حل اللغة: ① طول-اوږد-یشد-ترلې شی-الحزمة-پنډ-شبر-لویشت

تشریح:- خو که ګیډۍ او پنډ (بوج) معلوم شی.مثلاً مسلم الیه د هغه رسۍ اوږدوالې بیان کړی.په کومه رسۍ چې ګیډۍ او پنډ اوترلې شی.مثلاً داسې اووائی.چه دا رسۍ یوه لیشت یا یوګز وی.نو په دې صورت کې به د ګیډۍ او پنډ په حساب سره به هم بیع سلم جائز وی.په دې شرط چې ګیډۍ او پنډ په داسې اندازه وی.چه په دې کې تفاوت نه وی.او که ددې باوجود تفاوت وی.نو جائز نه دې.

### د مسلم فیه موجود کیدلو شرط

قال (قدوری رح) فرمایي لا يجوز السلم (چه بیع سلم جائز نه دې حتى يكون المسلم فيه موجودا من حين العقد إلى حين المحل.تردې چې عقدسلم د عقد دوخت نه واخله د ادا کاوه د وخت پورې موجود وی حتى لو كان منقطعا عند العقد موجودا عند المحل تردې که مسلم فیه د عقد په وخت منقطع وی اود ادائیګۍ په وخت موجود وی أو على العكس یا ددې په عکس وی أو منقطعا فيما بين ذلك یا ددې په منځ کې منقطع وی لا يجوز نو سلم جائز نه دې.

تشریح:- ابو الحسین قدوری رح فرمائی.چه زموږ په نیز د بیع سلم جائز کیدلو شرط دادې.چه مسلم فیه د عقد په وخت هم موجود وی.د ادا کاوه په وخت هم موجود وی.او ددې دواړو وختونو په مینځ کې هم موجود وی.که مسلم فیه د عقد په وخت کې بازار کې نه ملاویږی.خود ادا کاوه په وخت ملاویږی.اود ادا کاوه په وخت نه ملاویږی.یاد عقد په وخت هم ملاویږی.اود ادا کاوه په وخت هم ملاویږی.خو په مینځ کې څه وخت لپاره بازار نه منقطع شوې وی.نو په دې درې واړه صورتونو کې بیع سلم جائز نه ده.

وقال الشافعي رح: او امام شافعی رح فرمایي يجوز إذا كان موجودا وقت المحل که د ادا کاوه په وخت موجود وی.نو بیع سلم جائز ده.

تشریح:- حضرت امام شافعی رح فرمائی.که مسلم فیه د ادا کاوه په وخت موجود وی.بیا هم بیع سلم جائز دې.اګرچه مسلم فیه د عقد په وخت بازار کې نه ملاویږی.ګویا امام شافعی رح د سلم د جواز لپاره د ادا کاوه په وخت د مسلم فیه موجود کیدلو اعتبار کوی.امام احمد رح هم ددې قائل دې.

لوجود القدرة على التسليم حال وجوبه ځکه چې د مسلم فیه اداکول لازمیدلو په وخت سپارلو باندې قدرت حاصل دې.

تشریح:- دامام شافعی رح دلیل دادې.چه کوم وخت د مسلم فیه اداکول لازم دی.چونکه هم هغه وخت مسلم فیه موجود دې په دې وجه مسلم الیه دا سپارلې شی.او په مسلم فیه باندې د مسلم الیه قادر کیدل د بیع سلم جائز کیدلو لپاره شرط دی.په دې وجه به په دې صورت کې بیع سلم جائز وی.

ولنا او زموږ دلیل دادې قوله عليه الصلاة والسلام چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی لا تسلفوا في الثمار حتى يبدو صلاحها(١) چې په میوو کې سلم مه کوئ.تردې چې ددې صلاح ښکاره شی.

(١) من حدیث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما أخرجه أبوداود في البيوع باب ٥٦ رقم ٣٤٦٧ وابن ماجه في التجارات باب ٦١ رقم ٢٢٨٤_





حل اللغة: ① لا تسلفوا-بیع سلف مه کوئ-② الثمار-جمع دثمر،میوه-③ یبدو-ښکاره کیږی-④ صلاح-د میوې پوخوالې

تشریح:- زموږ دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه تاسو په میوو کې بیع سلم مه کوئ.تردې چې ددې صلاح ښکاره شی.یعنی ترکومه پورې چې میوې د نفع اخستلو قابل نه وی.ددې بیع سلم مه کوئ.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د عقدسلم په وخت د میوو نافع کیدلو حالت کې کیدل ضروری دی.او هم ددې نه ثابته شوه.چه د عقد په وخت د مبیع موجود کیدل شرط دی.ځکه چې د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې مبیع یعنی میوې معدوم دی.اوپه دې باندې د ټولو اجماع ده.چه د ادا کاوه په وخت د مبیع موجودکیدل شرط دی.

ولأن القدرة على التسليم بالتحصيل او ځکه چې د مسلم فیه سپارلو قدرت د حاصلولو ذریعه وی فلا بد من استمرار الوجود في مدة الأجل نود مقرر میعاد په موده کې د مسلم فیه پیوسته موجود کیدل ضروری دی ليتمكن من التحصيل چې ددې د حاصلولو قدرت وی.

حل اللغة: ① الاستمرار-جاری والې-② المدة-موده-③ یتمکن-قدرت حاصلیږی-④ التحصیل-حاصلول

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه مسلم الیه، مسلم فیه هغه وخت سپارلې شی.چه کله دې دا حاصل کړی.اوهغه وخت نې حاصلولې شی.چې کله دا شۍ په بازارکې موجود وی.په دې وجه د مقرر میعاد په موده کې ددې شۍ برابر په بازارکې موجود پاتې کیدل ضروری دی.چه مسلم الیه ددې په سپارلو باندې قادر وی.

### د مسلم فیه منقطع کیدلو مسئله

ولو انقطع بعد المحل اوکه د مقرر میعاد نه روسته هغه شۍ منقطع شو فرب السلم بالخيار إن شاء فسخ السلم نو رب السلم ته اختیار دې.که غواړی.نو عقدسلم دې فسخ کړی وإن شاء انتظر وجوده اوکه غواړی.نود مسلم فیه موجود کیدلو انتظار دې اوکړی.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که عقدسلم نې په داسې شۍ کې اوکړلو.چه دا دعقد د وخت نه واخله د ادا کاوه د وخت پورې برابر ملاویږی.خود مسلم الیه د سپارلو نه وړاندې دا دبازار نه منقطع شو.نو عقدسلم پخپل حال صحیح دې.البته رب السلم ته اختیار دې.که زړه نې غواړی.نو عقدسلم دې فسخ کړی.اوکه زړه نې غواړی.نود مسلم فیه موجود کیدلو او ملاویدلو انتظار دې اوکړی.چه کله مسلم فیه موجود شی.نود مسلم الیه نه دې وصول کړی.

① دامام زفر رح مذهب دادې.چه په دې صورت کې به عقدسلم باطل شی.هم دا یو قول د امام شافعی رح دې. دلیل دادې.چه کله مسلم الیه د مسلم فیه سپارلو نه عاجز شو.نود داسې شوه.لکه چې په بیع مطلق کې په مبیع باندې د قبضه کولونه وړاندې د بائع په قبضه کې مبیع هلاک شو.اود مبیع هلاکیدلو په صورت کې چونکه بائع د مبیع سپارلو نه عاجز وی.په دې وجه په دې صورت کې بیع باطلیږی.نو ځنګه چې د مبیع هلاکیدلو په صورت کې د مبیع سپارلو نه د عاجز کیدلو په وجه بیع باطلیږی.دغه ډول مسلم فیه د بازار نه د منقطع کیدلو په صورت کې هم مسلم الیه د مسلم فیه سپارلو نه عاجزه کیږی.په دې وجه په دې صورت کې هم بیع سلم باطلیږی.

② الجواب من قیاس زفر رح د امام زفر رح د مسلم فیه منقطع کیدل،په مبیع هلاکیدلو باندې قیاس کول،نودا قیاس فاسد دې.ځکه چې د مبیع هلاکیدلو په صورت کې محل د عقد فوت کیږی.او محل عقد یعنی د معقود علیه فوت کیدلوسره عقد فوت کیږی.په دې وجه د مبیع هلاکیدلو په صورت کې بیع باطلیږی. او په عقدسلم کې معقود علیه دین وی.او محل دین د مسلم الیه ذمه وی.او ذمه پاته ده.نود دین محل یعنی ذمه پاته کیدلو په وجه دین پاته دې.او دین چونکه معقود علیه دې.په دې وجه د دین پاته کیدلو په وجه معقود علیه پاته ده.او هرکله چې معقودعلیه پاته ده.نوعقد به هم پاته وی.نو ثابته شوه.چه د مقرر میعاد نه روسته د مسلم فیه منقطع کیدلو په وجه عقدسلم نه باطلیږی.

لِأَنَّ السَّلَمَ قَدْ صَحَّ خکه چې عقدسلم خو صحيح شو وَالْعَجْزُ الطَّارِئُ عَلٰى عَرَضِ الزَّوَالِ او مسلم ته چې کوم عجز پيدا شوې دې هغه د زائل کيدلو په غاړه دې فَصَارَ كَإِبَاقِ الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ نو داسې شوه لکه چې د قبضه نه وړاندې مبيع غلام اوتختي.

حل اللغة: ① الطارئ-پيدا شوي-② الاباق-تختيدل-③ السمک-کب-④ لمالح-مالګين

تشريح:- زموږ دليل دادې چه هرکله د بيع سلم د جواز شرط يعنى د عقدسلم د وخت نه واخله د ادا کاوه د وخت پورې دمسلم فيه موجود کيدل اوموندې شو.نو بيع سلم به صحيح وی.البته د يوعارض يعنى د مسلم فيه منقطع (ختميدلې) شى.خکه چې کوم شى نن په بازارکې موجود نه دې.صباله موجود کيدلې شى.نودا داسې شوه.لکه چې د مشترى د قبضه کاوه نه وړاندې مبيع غلام د بائع د قبضه نه اوتختيدلو.اود مبيع غلام تختيدلو په صورت کې بيع نه باطليږي.بلکه مشترى ته د بيع فسخ کولو، اود غلام دواپسى انتظار کاوه اختيار وی.نوکه غواړی.بيع دې فسخ کړی.اوکه غواړی.نود غلام واپس راتګ و انتظار دې اوکړی.نو هم دغه ډول د مقرره ميعاد نه روسته د مسلم فيه د انقطاع په صورت کې به هم رب السلم ته اختيار وی.چه بيع سلم فسخ کړی.ياد مسلم فيه موجود کيدلو انتظار اوکړی.

### د مالګين مئې(کب) د بيع السلم حکم

قَالَ وَيَجُوزُ السَّلَمُ فِي السَّمَكِ الْمَالِحِ وَزْنًا مَعْلُومًا وَضَرْبًا مَعْلُومًا او په مالګين کب کې په معلوم وزن او معلوم ډول سره بيع سلم جائز ده.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.مئې که مالګين وی.نو ددې بيع سلم جائز دې.په دې شرط چې ددې وزن معلوم وی.او ددې نوع بيان کړې شوې وی.

لِأَنَّهُ مَعْلُومُ الْقَدْرِ خکه چې ددې مقدار معلوم دې مَضْبُوطُ الْوَصْفِ صفت ئې معلوم دې مَقْدُورُ التَّسْلِيمِ ددې سپارل په قدرت کې دی إِذْ هُوَ غَيْرُ مُنْقَطِعٍ خکه چې دا نه منقطع کيږي.

حل اللغة: ① مقدور-چه د قدرت لاندې-② غير منقطع-نه ختميدونکې-③ الطرى-تازه-④ الشتاء-ژمی

تشريح:- خکه چې په وزن بيانولو سره ددې مقدار معلوم شوې دې.او په نوع بيانولو سره ددې وصف پيژندلې او معلوميدلې شى.او مالګين مئې چونکه په هره زمانه کې ملاويږی.هيڅ کله د بازار نه نه منقطع کيږی.په دې وجه مسلم اليه ته ددې په سپارلو باندې قدرت هم حاصل دې.اود کوم شى چې مقدار معلوم وی.او ددې وصف بيان شوې وی.او ددې په سپارلو باندې قدرت وی.دهغې بيع سلم جائز وی.په دې وجه د مالګين مئى بيع سلم، په وزن معلوم او ډول معلوم سره جائز ده.

وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِيهِ او په دې مالګين کب کې په شمار سره بيع سلم جائز نه ده عَدَدًا لِلتَّفَاوُتِ خکه چې ددې افراد متفاوت وی.

تشريح:- خوکه د مالګين مئى بيع سلم په شمارسره اوکړې شوه.مثلاً مسلم فيه سل مهيان ( کبان) مقررکړې شو.نو په دې صورت کې به بيع سلم جائز نه وی.خکه چې د مهيانو په افرادکې دماليت په اعتبارسره ډير لوئې تفاوت وی.او وړاندې تيرشوی دی.چه د کومو څيزنو افراد متفاوت وی.د هغې بيع سلم جائز نه وی.په دې وجه په شمير سره د مالګين مهئى بيع سلم جائز نه ده.

### د تازه مئې د بيع السلم حکم

قَالَ فرمايي وَلَا خَيْرَ فِي السَّلَمِ فِي السَّمَكِ الطَّرِيِّ اود تازه کب په بيع سلم کې هيڅ خير نشته إِلَّا فِي حِينِهِ وَزْنًا مَعْلُومًا وَضَرْبًا مَعْلُومًا خو ددې په زمانه ( سيزن) کې په معلوم وزن او معلوم نوع سره.



تشريح:- امام محمد ﷬ په جامع صغيرکې بيان کړی دی.چه د تازه مئى بيع سلم ددې په موسم کې جائز ده.يعنى په کوم موسم کې چې تازه ميان برابر( هروخت) ملاويږی.که هم په دې زمانه کې يو خاص ډول مئې په وزن معلوم سره مسلم فيه مقررکړې شو.نو جائز دی.خکه چې په دې صورت کې مسلم اليه د مسلم فيه په سپارلو باندې قادر دې.

لِأَنَّهُ يَنْقَطِعُ فِي زَمَانِ الشِّتَاءِ خکه چې د تازه کبانو (راتګ) د يخنئ په موسم کې منقطع کيږی حَتّٰى لَوْ كَانَ فِي بَلَدٍ لَا يَنْقَطِعُ تردې که عاقد په داسې ښار کې وی.چه هلته کې تازه مايان (کبان) نه منقطع کيږی يَجُوزُ مُطْلَقًا([1]) نو مطلقاً جائز دې.

تشريح:- او بې موسمه خکه ناجائز دې.مثلاً د يخنئ په زمانه کې د اوبو اوچيدلو په وجه دميانو ملاويدل بنديږی.نوکه د يخنئ په موسم کې د مئى بيع سلم اوکړې شو.نوچونکه د عقد د وخت نه واخله تر د ادا کاوه وخت پورې دمسلم فيه موجودکيدلو شرط فوت شو. او مسلم فيه مقدورالتسليم پاتې نشو.په دې وجه بې موسمه بيع سلم ناجائز دې.خوکه عاقدين په داسې ملك کې وی.چه هلته کې تازه ميان هيڅ کله نه مقطع کيږی.بلکه په هره زمانه کې دا ملاويږی.نو هلته کې هره زمانه کې د تازه مئى بيع سلم جائز ده.

وَإِنَّمَا يَجُوزُ وَزْنًا او په وزن سره جائز دې لَا عَدَدًا په شمار سره جائز نه دې لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې.

تشريح:- علامه مرغينانى ﷬ فرمانى.دا خيال ساتل پکار دی.چه د تازه ميانو بيع سلم هم په وزن سره جائز ده.خو په شمار سره جائز نه ده.او ددې دليل وړاندې تيرشوې دې.چه د ميانو افراد د غټوالى او وړوکوالى په وجه په ماليت کې متفاوت وی.او دکوم شئ افراد چې په ماليت کې متفاوت وی.د هغې بيع سلم عدداً جائز نه دې.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اود امام ابوحنيفه ﷬ نه روايت دې أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي لَحْمِ الْكِبَارِ مِنْهَا چې د تازه غټو کبانو په غوښه کې سلم جائز نه دې وَهِيَ الَّتِي تُقَطَّعُ او غټ مايان (کبان) هغه دی.کوم چې کټ کولې شى (او خرخولې شى).

تشريح:- د حضرت امام ابوحنيفه ﷬ نه روايت دې.چه د تازه غټو ميانو د غوښې بيع سلم جائز نه دې.او غټ ميان هغې ته وائى.کوم چې کټ کولې شى.او خرخولې شى.

اعْتِبَارًا بِالسَّلَمِ فِي اللَّحْمِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه ﷬ په نيز غوښه په بيع سلم باندې قياس کړې شوې ده.

تشريح:- د امام صاحب ﷬ ددې روايت دليل قياس دې.يعنى لکه څنګه چې د وزه وغيره د غوښې بيع سلم جائز نه دې.دغه ډول غټ ميان کوم چې کټ کولې شى.او خرخولې شى.د هغې بيع سلم هم جائز نه ده.او علت جامعه دادې.چه لکه څنګه د وزه وغيره غوښه د وازګې او بې وازګې کيدلو په وجه مختلف وی.دغه ډول دميانو غوښه هم مختلف وی.

### د غوښې د بيع السلم حکم

قَالَ فرمايي وَلَا خَيْرَ فِي السَّلَمِ فِي اللَّحْمِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود ابوحنيفه ﷬ په نيز د غوښې په بيع سلم کې هيڅ خيرنشته.

تشريح:- د غوښې د بيع سلم عدم جواز بيانولو لپاره حضرت امام ابوحنيفه ﷬ د ﴿لايجوز﴾ عام لفظ پريښولو .اود ﴿لاخير﴾ لفظ ئې ذکر کړې دې.

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين ﷬ كذا فى ردالمحتار(۲۲۸\۱٤) وفتح القدير(۲۱۵\٦) والعناية (۲۱۵\٦) نقلاً عن القول الراجح (۲\۷٤)-

علامه بدرالدين عيني رحمه الله ددې دوې (دوه) وجهې ليکلې دی. ① يوه دا ده چې مجتهد کله پخپلې رائې سره د کوم حکم استنباط کوی. نودا که په عدم جواز باندې مشتمل وی. نو ددې تعبير کاوه لپاره «لاخير» وائی. اوکه په جواز باندې مشتمل وی. نود «لاباس» لفظ ذکر کوی. او ددې مقصد د الله تعالی په احکامو کې د خپلې رائې نه قطعي او يقيني طور فيصله ور کاوه نه ډډه کول وی. بهرحال د غوښې د بيع سلم مسئله مختلف فيه ده. حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دعدم جواز قائل دې. ② دويمه وجه داده. چه د حضرت امام صاحب رحمه الله مقصود د غوښې بيع سلم عدم جواز ،،على سبيل المبالغه،، بيانول دی. او په «لاخير» کې مبالغه په دې طريقه ده. چه خير نکره ده. اود نفي لاندې واقع شوې ده. او ،،نکره تحت النفي،، د عموم فائده ورکوی. نو «لاخير» دخپل عموم په وجه د انواع خير د ټولو افرادو د نفي فائده ورکوی. يعنی د غوښې په بيع سلم کې هيڅ خيرنشته. او په دې کې مبالغه ښکاره ده.

| وَقَالَا او صاحبين رحمهما الله فرمايي إِذَا وَصَفَ مِنَ اللَّحْمِ مَوْضِعًا مَعْلُومًا بِصِفَةٍ مَعْلُومَةٍ (1) که د غوښې معلوم ځائې نې په معلوم صفت سره بيان کړی وی جَازَ نو جائز دې. |
|---|

تشریح:- او صاحبين رحمهما الله فرمائی. که رب السلم جنس، نوع، اود غوښې ځائې او ددې وصف بيان کړلو نو جائز دی. مثلاً داسې نې اووئيل چه د دوې (دوه) کلن غټه موټه تازه خصي چيلي ورون يا د سينې غوښه مسلم فيه ده. نو جائز ده.

| لِأَنَّهُ مَوْزُونٌ مَضْبُوطُ الْوَصْفِ ځکه چې غوښه د وزن او صفت سره معلوم ده. |
|---|

تشریح:- د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې چه غوښه په عرف عام کې وزني ده. يعنی د غوښې اخستل خرڅول په وزن سره کيږي. اود جنس، نوع، اود غوښې په ځائې بيانولو سره ددې وصف هم پيژندلې شي. نو هرکله چې غوښه موزوني ده. او ددې وصف هم بيان شوې دې. نو ددې سپارل به متعذر نه وی. بلکه ممکن به وی. او کوم شئ چې مقدور التسليم وی. د هغې بيع سلم چونکه جائز وی. ځکه به د غوښې بيع سلم جائز وی.

| وَلِهَذَا يُضْمَنُ بِالْمِثْلِ اوهم دغه ډول غوښه مضمون بالمثل وی وَيَجُوزُ اسْتِقْرَاضُهُ وَزْنًا او په وزن سره ددې پور اخستل جائز دی وَيَجْرِي فِيهِ رِبَا الْفَضْلِ او په دې کې ربوا الفضل جاری کيږي. |
|---|

حل اللغة: ① الاستقراض- پور اخستل-② ربا-سود-③ الفضل-زيادت-④ يضمن-ضامن کيږي

تشریح:- او غوښه چونکه موزوني او معلوم الوصف ده. په دې وجه که يو کس غوښه هلاکه کړه. نو ددې د مثل به په وزن سره تاوان او ضمان لازميږي. او په وزن سره د غوښې قرضه اخستل جائز دی. اوکه غوښه ددې هم جنس غوښې په عوض زياتوالی سره خرڅه کړې شوه. نودا زياتوالی حرام او رباء ده. او علت د رباء وزن مع الجنس دې. بهرحال داخبره ثابته شوه. چه غوښه يو وزنی شئ دې. اوجنس يا نوع او سينه يا ورون وغيره ځائې بيانولو سره ددې وصف هم پيژندلې شي. او کوم شئ چې وزني او معلوم الوصف وی. د هغې سپارل متعذر نه وی. بلکه مقدورالتسليم وی. اود کوم شئ سپارل چې د مسلم اليه په قدرت کې وی. دهغې بيع سلم جائز وی. ځکه به د غوښې بيع سلم جائز دی.

| بِخِلَافِ لُحُومِ الطُّيُورِ په خلاف د مارغانو د غوښې لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ وَصْفُ مَوْضِعٍ مِنْهُ ځکه چې په مارغانو کې د هيڅ ځائې بيانول ممکن نه دی. |
|---|

(1) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٢١٦/٦) والدرالمختار(٢٢٨/١٤) نقلاً عن القول الراجح(٧٥١/٢)-



حل اللغة: ① لحم-غوښه-② الطيور-جمع د طائر، مرغۍ-③ يمكن-ممکن دې-④ موضع-ځائې

تشریح:- البته د مارغانو د غوښو بيع سلم جائز نه ده. اود عدم جواز وجه داده. چه په مارغانو کې چونکه غوښه ډيره کمه وی. په دې وجه د يوځائې بيانول. يعنی دا ونيل چه غوښه د مارغه د سينې وی. ياد ورون وی. يا د ورون وی. ممکن نه دی. او په ځريدونکی ځاروی کې چونکه ددې امکان شته. په دې وجه ددې د غوښې بيع سلم جائز دې.

| وَلَهُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ مَجْهُولٌ لِلتَّفَاوُتِ فِي قِلَّةِ الْعَظْمِ وَكَثْرَتِهِ چې غوښه د هډوکو د کموالی او زياتوالی په وجه أَوْ فِي سِمَنِهِ وَهُزَالِهِ عَلَى اخْتِلَافِ فُصُولِ السَّنَةِ ياد کال په مختلف فصلونوکې د ځاروو د غټ والی او نرۍ والی په وجه متفاوت وی وَهَذِهِ الْجَهَالَةُ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ اودا جهالت مفضی الی المنازعه وی. |
|---|

حل اللغة: ① العظم-هډوکې-② سمن-سربوالې-③ الهزل-تپ-④ المنازعة-جګړه

تشریح:- حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دعدم جواز دوې (دوه) وجهې بيان کړې دی. ① يوه وجه داده. چه غوښه د هډوکو د قلت اود کثرت په وجه چونکه متفاوت وی. په دې وجه به دا مجهول وی. ② او دويمه وجه داده. چه د موسمونو د اختلاف په وجه غوښه مختلف وی. چه د يخنۍ په زمانه کې د ځاروو غوښه ښه سربه او تازه وی. اود ګرمۍ او بارانونو په زمانه (موسم برسات) کې دومره سربه او تازه نه وی. بلکه ډنګره او کمزورې وی. نوددې تفاوت او اختلاف وجه به هم مسلم فيه مجهول وی. او په ذکرشوی دواړو صورتونوکې داسې جهالت دې. چه جګړه پيدا کوی. چه رب السلم به دداسې غوښې مطالبه کوی. چه په هغې کې هډوکی نه وی. او مسلم اليه به داسې سپاری. چه په هغې کې ښه هډوکی وی. دغه ډول که رب السلم سربه او تازه غوښې شرط اولګولو. او په اتفاق سره ميعاد په داسې زمانه کې پوره شو. چه ځاروی ډنګر (کمزوری) وی. نو رب السلم به د سربې او تازه غوښې مطالبه کوی. او مسلم اليه به خپله لاچاری ښکاره کوی. اوکومه چې ده سره موجود وی. د هغې د سپارلو کوښښ به کوی. بهرحال په دواړو صورتونوکې داسې جهالت دې. چه جګړه پيدا کوی. کوم جهالت چې د جګړې باعث وی. هغه بيع فاسد کوی. په دې وجه د غوښې بيع سلم فاسد او ناجائز دې.

| وَفِي مَخْلُوعِ الْعَظْمِ اود هډوکی نه جداکړې شوې غوښه کې لَا يَجُوزُ عَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي په دويمه وجه باندې بيع سلم جائز نه دې وَهُوَ الْأَصَحُّ اوهم دا روايت زيات صحيح دې. |
|---|

حل اللغة: ① مخلوع-جدا کړې شوې-② التضمين-ضامن ګرځول-③ ممنوع-منع شوې-④ الاستقراض- پور اخستل

تشریح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی. که د هډوکی جلا شوې غوښې بيع سلم اوکړې شو. نو بيا هم ناجائز ده. ځکه چې په دې صورت کې د عدم جواز دويمه وجه يعنی د سرب والی او ډنګروالی کيدلو تفاوت موجود دې. اوکه د غټ، سرب اود تازه ځاروی د غوښې شرط اولګولې شو. او ميعاد په داسې زمانه کې پوره شو. چه ځاروی انتهائی کمزوری او ډنګر وی. نود عقدسلم د وخت نه واخله تر د ادا کاوه وخت پورې دمسلم فيه موجود کيدلو شرط اونه موندې شو. په دې وجه به هم په دې صورت کې بيع سلم جائز نه وی.

علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی. چه د هډوکی جداکړې شوې غوښې بيع سلم په وجه ثاني سره ناجائز کيدل هم دا زيات صحيح روايت دې. ابن شجاع رحمه الله هم دا د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دې. اګرچه د حسن روايت مطابق د هډوکی جداکړې شوې غوښې بيع سلم جائز دې.

| وَالتَّضْمِينُ بِالْمِثْلِ مَمْنُوعٌ اود غوښې بالمثل مضمون کيدل زيات ممنوع دی وَكَذَا الِاسْتِقْرَاضُ اودغه ډول په وزن سره پور اخستل هم (ممنوع دی). |
|---|

تشریح:- دا عبارت د صاحبينو رحمهما الله د قول ځواب دې. حاصل د ځواب دادې. چه د صاحبينو رحمهما الله دا ونيل،، چه غوښه چونکه موزوني ده. په دې وجه د هلاکاوه په صورت کې ددې ضمان بالمثل واجبيږي. اوپه وزن سره پور اخستل جائز دی،، غلط دی. داخبره مونږ نه منو. بلکه د غوښې هلاکاوه په صورت کې ددې قيمت واجبيږي. ضمان بالمثل

نه واجبیږي.او هم دغه ډول په وزن سره پور اخستل هم ناجائز دی.بهرحال چې کله دا دواړه خبرې نه منو.نو په دې
سره استدلال کول به هم صحیح نه وی.

وَبَعْدَ التَّسْلِيمِ فَالْمِثْلُ أَعْدَلُ مِنَ الْقِيمَةِ اود تسلیم نه روسته (خواب دادې چه) مثل د قیمت په نسبت زیات برابری
کونکي دي.

**تشریح:-** اوکه دا اومنو.نو بیا هم د هلاکیدلو په صورت کې غوښه مضمون بالمثل وی.نو په دې سره د غوښې وزنی
کیدل نه ثابتیږی.لکه څنګه چې حضرات صاحبین ګڼری.بلکه اصل دادې.چه کله یو څیز هلاك کړې شی.نو په
هلاکونکی باندې ضمان واجبیږی.او په ضمان کې اصل مماثلت دې.اود هلاك شوی شئ مثل واجبولو کې صورة هم
مماثلت موندلې شی.او معنی هم مماثلت موجود دې.او په قیمت واجبولو کې صرف مماثلت موندلې شی.نو په
مماثلت نشی موندلې.اودا خبره اظهرمن الشمس ده.چه صورة او معنی دواړه قسمه مماثلت موندلو په صورت کې
هلاك شوی شئ سره مساوات او برابری زیاته وی.په نسبت د مثل معنوی،یعنی د قیمت واجبولو.په دې وجه د
غوښې ضمان بالمثل واجبیږی.او ددې مصلحت نه په ضمان بالمثل واجبولو سره د غوښې وزنی کیدل نه
ثابتیږی.

وَلِأَنَّ الْقَبْضَ يُعَايَنُ فَيُعْرَفُ مِثْلُ الْمَقْبُوضِ بِهِ فِي وَقْتِهِ او څکه چې قبضه مشاهد وی.نو پخپل وخت کې د مقبوض مثل
پیژندلې شی أَمَّا الْوَصْفُ فَلَا يُكْتَفَى بِهِ او پاتې شو وصف،نو په دې به اکتفاء نشی کیدلې.

**حل اللغة:** ① یعاین-کتلې شی-② یعرف-پیژندې شی-③ یکتفی -اکتفاء کولې شی-④ موجل-په نیته

**تشریح:-** او په وزن سره د پور اخستلو په صورت کې قبضه چونکه فوری وی.څکه به دا مشاهد(حاظر) اود سترګو د
وړاندې وی.او هر کله چې په قرضه کې شئ مقبوض، محسوس او مشاهد وی.نو ددې پخپل وخت کې د مقبوض په
مثل شناخت کیدلې شی.او هر کله چې په قرضه کې د مقبوض مثل معلوم دې.نو جهالت لرې کیږی.او هر کله چې
جهالت لرې شو.نو په وزن سره به قرضه اخستل هم جائز وی.او په عقدسلم کې فوری قبضه نه وی.بلکه صرف د
مسلم فیه وصف ذکرکولې شی.او صرف په وصف سره چونکه پوره شناخت نه کیږی.په دې وجه به په وصف باندې
اکتفاء نه کیږی.اود غوښې بیع سلم به جائز نه وی.

### د میعاد(نیتې) نه بغیر د بیع سلم حکم

قَالَ فرمایي وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ او عقدسلم نه جائز کیږی إِلَّا مُؤَجَّلًا مګر میعادی (په نیته) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ يَجُوزُ حَالًّا
لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ وَرَخَّصَ فِي السَّلَمِ او امام شافعی ﷫ فرمائی.چه د حدیث (ورخص فی السلم) مطلق کیدلو په وجه بیع
سلم حالاً هم جائز ده.

**تشریح:-** زموږ په نیز د میعاد نه بغیر عقدسلم جائز نه دې.د امام مالك او امام احمد ﷫ هم دا مذهب دې.اود امام
شافعی ﷫ په نیز جائز دی.مثلاً یو کس اووئیل.چه ما ددې لس درهمو عقدسلم په یو کُر غنمو(چې ددې دا
صفتونه دی) کې اوکړله.اود فوری طور سپارلو شرط نې اولګولو.یا نې میعاد مقررنکړلو.نودا عقدسلم زموږ په
نیز ناجائز دې.اود امام شافعی ﷫ په نیز جائز دې.

د امام شافعی ﷫ دلیل دا حدیث دې. «أنه نهی عن بیع مالیس عند الإنسان ورخص فی السلم» په دې حدیث کې رسول
الله ﷺ بیع سلم مطلقاً جائز ګرځولې ده.که سلم میعادی وی.او که غیرمیعادی وی.نود اجل او میعاد شرط لګول به
په نص د حدیث باندې زیاتوالې کول وی.او په نص باندې زیاتوالې کول جائز نه دې.څکه د اطلاق حدیث په وجه
سلم میعادی اوغیرمیعادی دواړه شان جائز دي.

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې رسول الله ﷺ زموږ په روایت شوی حدیث کې فرمائیلی دی إِلَى



أَجَلٍ مَعْلُومٍ فِيمَا رَوَيْنَا (1) چه،،یو معلوم میعاده پورې وَلِأَنَّهُ شُرِعَ رُخْصَةً دَفْعًا لِحَاجَةِ الْمَفَالِيسِ او څکه چې عقدسلم د
فقیرانو اړتیا لرې کاوه لپاره چونکه د رخصت په طور مشروع شوې دې فَلَا بُدَّ مِنَ الْأَجَلِ په دې وجه د میعاد کیدل
ضروری دی لِيَقْدِرَ عَلَى التَّحْصِيلِ فِيهِ فَيُسَلِّمُ چې په دې میعاد کې مسلم فیه په حاصلولو او سپارلو باندې قادر شی وَلَوْ
كَانَ قَادِرًا عَلَى التَّسْلِيمِ اوکه دې بالفعل سپارلو باندې قادر وی لَمْ يُوجَدِ الْمُرَخِّصُ نو چونکه رخصت ورکونکې
سبب اونه موندې شو فَيَبْقَى عَلَى النَّافِي په دې وجه ددې حکم نفی کونکی باندې پاته شو.

**حل اللغة:** ① المفالیس-جمع د مفلس،غریب-② المرخص-رخصت ورکونکې-③ المنازعة-جګړه-④ ادنی-کم،معمولی

**تشریح:-** زموږ دلیل② د نبی کریم ﷺ دا قول دې. «من أسلم منکم فلیسلم فی کیل معلوم و وزن معلوم إلی أجل معلوم» په دې
حدیث کې رسول الله ﷺ چې څنګه په مسلم فیه کې د کیل معلوم یا وزن معلوم کیدلو شرط بیان کړې دې.دغه ډول
نې د میعادی کیدلو شرط هم بیان کړې دې.ددې نه معلومیږی.چه د مسلم فیه معیادی کیدل ضروری دی.اود
امام شافعی ﷫ د اړخه پیش شوې حدیث مطلق «ورخص فی السلم» به په دې حدیث باندې محمول کولې شی.کوم
چې د اجل په قید سره مقید دې.② دوهم دلیل دادې.چه بیع سلم د ناچار او غریبو خلګو د اړتیا پوره کاوه لپاره
مشروع شوې دې.اودا اړتیا هم هغه وخت پوره کیدلې شی.چه د مسلم فیه ادا کاوه لپاره څه میعاد(نیته)
مقرر کړې شی.چه مسلم الیه په دې موده کې مسلم فیه حاصل کړی.او رب السلم ته نې اوسپاری.اوکه مسلم الیه
فی الحال په مسلم فیه سپارلو باندې قادر وی.نو چونکه په دې صورت کې مرخص (د رخصت سبب) یعنی اړتیا
اونه موندې شو.په دې وجه به د حکم یعنی «لاتبع مالیس عندك» مطابق وی.حاصل دادې.چه د معدوم بیع باطل
او ناجائز وی.خود غریبانو اړتیا پوره کاوه لپاره دمسلم فیه معدوم کیدلو باوجود بیع سلم جائز ګرځولې شوې
دې.خو چې کله مسلم الیه فی الحال د مسلم فیه په سپارلو باندې قادر وی.نودا اړتیا به متحقق نه وی.او هرکله
چې د بیع سلم جائز کیدلو اړتیا متحقق نشو.نو بیع سلم به هم جائز نه وی.

### د معلوم اجل شرطیت

قَالَ فرمایي وَلَا يَجُوزُ او بیع سلم جائز نه ده إِلَّا بِأَجَلٍ مَعْلُومٍ مګر په معلوم میعاد سره لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه
کوم چې موږ روایت کړې دې وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهِ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ او څکه چې د میعاد مجهول کیدل،،مفضی
الی المنازعه،،وی كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څنګه چې په بیع کې دی.

**تشریح:-** ابو الحسین قدوری ﷫ فرمائی.چه هر کله په عقدسلم کې دمیعاد شرطیت ثابت شو.نودا بیانول هم
ضروری دی.چه د میعاد معلوم کیدل هم شرط دی.او ددې دلیل① وړاندې تیرشوې دې.یعنی د رسول الله ﷺ قول
«من أسلم منکم فلیسلم فی کیل معلوم و وزن معلوم إلی أجل معلوم» ② دوهم دلیل دادې.چه د میعاد مجهول
کیدل،،مفضی الی المنازعه،،وی.په دې طریقه چې رب السلم به په نژدې موده کې مطالبه کوی.او مسلم الیه به په
لرې موده کې د ادا کاوه کوښښ کوی.او داسې جهالت کوم چه،،مفضی الی المنازعه،،وی.مفسد وی.په دې وجه
دمیعاد مجهول کیدل به د بیع سلم لپاره مفسد وی.لکه څنګه چې په بیع کې جهالت د ثمن او جهالت د مبیع
مفسد د بیع وی.

وَالْأَجَلُ أَدْنَاهُ شَهْرٌ (2) او میعاد کم از کم یوه میاشت ده. وَقِيلَ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ او وئیلې شوی دی.چه درې ورځې دی وَقِيلَ
أَكْثَرُ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ او وئیلې شوی دی.چه د نیمې ورځې نه زیات وی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او ړومبې قول اصح دې

(1) الحدیث المذکور تقدم تخریجه۔

(2) القول الراجح هو هذا قول أن الأجل أدناه شهرا کذا فی فتح القدیر(۲۱۹\۶) والکفایة (۲۱۹\۶) وردالمحتار (۲۳۰\۱٤) والبحرائق
(۱٦۰\٦) والزیلعی(۱۱۵\٤) نقلاً عن القول الراجح(۷۷\۲)۔

**تشريح:**- پاتي شوه داخبره چې په بيع سلم کي د ميعاد ادنى موده څه ده؟ نو په دې اړه کي علامه مرغيناني رح درې اقواله بيان کړي دي. ① رومبې قول دادې،چه په بيع سلم کي ادنى موده يو مياشت ده. ② دوهم قول د درې ورځو دې. ③ دريم قول د نيمې ورځې نه د زيات دې.

① د رومبى قول دليل د،،كتاب الايمان دا مسئله ده.كه يوكس قسم اوخوړلو چه زه به ستا قرضه عاجلاً ادا كوم بيائي د يومياشت پوره كيدلو نه مخكې مخكې ادا كړله.نو ددې كس قسم پوره شو.ددې مسئلې نه معلومه شوه.چه د يومياشت نه كم دعاجل په حكم كي دې.او هركله چې ديو مياشت نه كم دعاجل په حكم كي دې.نو يو مياشت او ددې نه زيات به د آجل په حكم كي وي. ② د دوهم قول دليل دخيارشرط موده ده. ③ د دريم قول دليل دادې،چه معجل هغه ته وانى،په كوم چې په مجلس كي دننه قبضه اوكړې شى.او په كوم چې د مجلس نه روسته قبضه اوكړې شى هغې ته موجل وانى.او په عامه توګه (عام طور) باندې مجلس نيمې ورځې پورې پاته كيږي.د نيمې ورځې نه زياتي پاته نه پاتې كيږي.په دې وجه د اجل او ميعاد كم نه كم موده به د نيمې ورځې نه زيات وي.علامه مرغيناني رح فرمائى،چه رومبې قول زيات صحيح دې.خكه چې يوه مياشت يوه داسې موده ده.چه په دې كي د مسلم فيه حاصلول ممكن دي.

### د معين سړي په پيمانه اوګز سره د بيع السلم حكم

ولا يجوز السلم بمكيال رجل بعينه ولا بذراع رجل بعينه او بيع سلم د يو معين سړي په پيمانه،اود معين سړي په ګز سره جائز نه دي معناه اذا لم يعرف مقداره ددې مطلب دادې،چه ددې مقدار معلوم نه دې لانه تأخر فيه التسليم خكه چې په عقدسلم كي مسلم فيه سپارل په تاخير سره كيږي فربما يضيع نو ډير څله دا مخصوص پيمانه يا مخصوص ګز ضائع كيږي فيؤدي الى المنازعة نو جګړه به پيدا شى وقد مر من قبل او دا وړاندې تيرشوى دى.

**حل اللغة:** ① ذراع-ګز-② رجل-سړي-③ يتاخر-روستو كيږي-④ يودى-پيدا كوى

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.كه د يومعين سړي يوه ذاتي پيمانه وي.چه د هغې مقدار معلوم نه وي.يا ذاتي ګز وي.چه ددې مقدار معلوم نه وي.نو په دې پيمانه اوګز سره به بيع سلم جائز نه وي.خكه چې په بيع سلم كي د مسلم فيه سپارل د ميعاد پورې موخر وي.او په دې موده كي ددې مخصوص پيمانې اوګز ضائع كيدل ممكن دي.نود ضائع كيدلو په صورت كي به د مسلم فيه سپارلو په وخت د رب السلم او مسلم اليه په مينځ كي جګړه پيدا شى.په دې طريقه چې رب السلم به د پيمانې د غټ والى دعوه كوى.او مسلم اليه به د وړكوټى كيدلو دعوه كوى.اوكوم شى چې جګړه پيدا كوى.مفسد د بيع وى.په دې وجه داسې مخصوص پيمانه او مخصوص ګز سره چې ددې مقدار معلوم نه وى.بيع سلم جائز نه دې.دا مسئله د كتاب البيوع په پيل كي تيره شوې ده.په ذكرشوى دليل سره دا خبره واضح كيږي،چه ددې مخصوص پيمانې يا مخصوص ګز كه مقدار معلوم وى.نو بيع سلم جائز دې.خكه چې د مقدار معلوميدلو نه روسته كه دا لوخې او پيمانه ضائع هم شى.بيا به هم د جګړې څه امكان نه وى.دغه ډول كه ددې پيمانې مقدار معلوم نه وى.خود مبيع سپارل فوراً وى.نو بيا به هم بيع جائز وى.خكه چې په دې صورت كي د پيمانې ضائع كيدل ډير ناآشنا دى.او هركله چې ددې مخصوص پيمانې ضائع كيدل ناآشنا دى.نو هيڅ جګړه به هم نه پيدا كيږي.

ولا بد أن يكون المكيال مما لا ينقبض ولا ينبسط او ضروري ده.چه پيمانه نه راټوليږي.او نه خورېږي كالقصاع مثلا لكه مثلاً كاسه ده. لأن كان مما ينكبس بالكبس نو كه په زور سره كېښيني كالزنبيل والجراب لكه زنبيل او تهيلى لا يجوز للمنازعة نود جګړې په وجه جائز نه دې الا في قرب الماء خود اوبو په مشكونو كي للتعامل فيه خكه چې په دې كي د خلګو عادت جارى دې. كذا روي عن أبي يوسف رحمه الله هم دغه ډول د امام ابويوسف رح نه نقل دي.



**حل اللغة:** ① ينقبض-راټوليږى-② ينبسط-خورېږى-③ القصاع-كاسه-④ التعامل-عمل د خلګو

**تشريح:**- علامه مرغيناني رح فرمائى،چه په كومه پيمانه سره د مسلم فيه ناپ كاوه شرط شوې دې.كه دا د ربړ پشان نه راټوليږى.او نه خورېږى.بلكه د اوسپنې يا د خاورې يا د لرګى يا ددې پشان د يوكلك شى وى.لكه پيالى، بالټې، يا خانك (لګن) چې دا شيان نه راټوليږى.او نه خورېږى.كه پيمانه داسې وى.چه په راټولولو سره راټوليږى.اوپه خورولو سره خورېږى.نو په دې سره به بيع جائز نه وى.خكه چې په دې صورت كي هم جګړه پيدا كيږى.په دې طريقه چې مشترى او رب السلم به مطالبه كوى.چه پيمانه بنه خوره كړې شى.او ډكه كړې شى.اود بائع او مسلم اليه آخرى كوښښ به دا وى.چه دا په داسې اندازه راټوله كړې شى.او ډكه كړې شى.چه په دې كي مبيع كم نه كم راخانې شي.او جګړه مفسد د بيع وى.په دې وجه په داسې لوخى سره بيع كول فاسد او ناجائز دى.البته د امام ابويوسف رح د روايت مطابق د اوبو د مشكونو بيع جائز ده. سره ددې چې مشك په بنه راټنګلو زيات ډكيږى.او په زور ور كاوه سره كم ډكيږى.ددې دليل د خلګو عادت دې.خكه چې د خلګو دا عمل برابر جارى دې.چه دوى د ماشكى نه د اوبو مشكونه اخلى.

### د معين كلي په غله ياد معين وڼې په ميوه كښې د بيع سلم حكم

قال فرمايى ولا في طعام قرية بعينها اود يو متعين كلى په غله ياد متعين وڼې په ميووكي بيع سلم جائز نه دې أو ثمرة نخلة بعينها لانه قد يعتريه آفة خكه چې كله په دې باندې آفت راخى فلا يقدر على التسليم نو هغه به ددې په سپارلو باندې قادر نه وى وإليه أشار عليه الصلاة والسلام او هم دغه ډول نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى حيث قال چه ارشاد نې اوفرمائيلو أرأيت لو أذهب الله تعالى الثمر چې اوګورئ كه الله تعالى ميوې ضائع كړى بم يستحل أحدكم مال أخيه؟ (١) نو په تاسو كي به څوك سړې د كوم شى په عوض د خپل رور مال حلال ګڼړى.

**حل اللغة:** ① قرية-كلي-② نخلة-د قجورې وڼه-③ ثمرة-ميوه-④ الاخ-ورور

**تشريح:**- ابو الحسين قدورى رح فرمائى.چه د يو متعين كلى غله ياد متعين وڼې يا د متعين باغ ميوو بيع سلم جائز نه دې.مثلاً د ديوبند غنم، ياد دهره دون اوريژې،يا د حامد د باغ د ميوو بيع سلم نودا جائز نه دى.

① دليل دادې. چې كله كله ددې متعين كلى غله ياد متعين وڼې په ميوو باندې آسمانى آفت راخى.او دا تباه او برباد كوى.او ددې مخصوص كلى غله يا د مخصوص وڼې يا د مخصوص باغ ميوې د خلګو د لاس نه منقطع كيږى.اوپه بازاركي نه ملاويږى.اوهركله چې داخبره ده.نو مسلم اليه به د مسلم فيه په سپارلو باندې قادر نه وى.او په كوم صورت كي چې مسلم اليه د مسلم فيه په سپارلو باندې قادر نه وى.په هغه صورت كي بيع سلم جائز نه وى.په دې وجه د متعين كلى غله ياد متعين وڼې ياد متعين باغ ميوو بيع سلم جائز نه دې.دې ارخ ته رسول الله ﷺ اشاره فرمائيلې ده.نقل دى.چه ﴿انه سئل عن السلم في ثمر فلان فقال أما من ثمر حائط فلان فلا أرأيت اذهب الله الثمر بم يستحل أحدكم مال اخيه﴾ يعنى،،د رسول الله ﷺ نه د فلانى سړې د ميوو بيع سلم په اړه كي پوښتنه اوكړې شو.نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.چه د فلانى سړې د باغ د ميوو بيع سلم جائز نه دې.تاسو اوګورئ.كه چرې الله تعالى د فلانى سړې ميوې ضائع كړى.نو په تاسو كي به څوك د كوم شى په عوض د خپل رور مال حلال ګڼړى؟،،حاصل د حديث دادې.چه د متعين سړې د باغ د ميوو بيع سلم جائز نه دې.خكه كه دا متعين باغ د آسمانى آفت په نتيجه كي هلاك شو.نود خپل رور يعنى د رب السلم راس المال به د كوم شى په عوض حلال ګڼړې.يعنى هركله چې دا متعين ميوې هلاكيدلو په وجه رب السلم ته حاصل نشوې.نود مسلم اليه لپاره به راس المال څنګه حلال وى.ددې حديث نه داهم ثابتيږى.چه د يو متعين كلى غله،يا د متعين وڼې ياد متعين باغ د ميوو بيع سلم جائز نه دې.

(١) من حديث أنس رضي الله عنه أخرجه البخارى فى البيوع باب ٨٧ رقم ٢١٩٨ ومسلم فى المساقاة رقم ١ والنسائى؟؟ فى البيوع باب ٢٩ ومالك [illegible] قم ١١)_

وَلَوْ كَانَتِ النِّسْبَةُ إِلَى قَرْيَةٍ لِبَيَانِ الصِّفَةِ او كلي ارخ ته نسبت كول د صفت بيانولو لپاره وي لَا بَأْسَ بِهِ نو په دې كې هيڅ باك نشته عَلَى مَا قَالُوا لكه څنګه چې مشائخ رحمهم الله فرمائيلي دي كَالْخَشْمَرَانِيِّ بِبُخَارَى لكه په بخاراكې خشمراني غنم وَالْبَسَاخِيِّ بِفَرْغَانَةَ يا په فرغانه كې بساخي وئيلې شي.

تشريح:- اوكه د يو كلي ارخ ته نسبت كول د صفت بيانولو په غرض سره وي. مثلاً كله چې د مليح آباد آم اووئيلې شي. نو په دې سره د مليح آباد متعين مقام مراد نه وي. بلكه مراد داوي. چه د مليح آباد پشان آمونه مقصود دي. كه په مليح آباد كې پيدا شوي وي. اوكه په بل ځائې كې پيدا شوي وي. نوكه كلي ارخ ته نسبت صرف د صفت بيانولو لپاره وي. نو په دې كې هيڅ باك نشته. يعنى په دې صورت كې بيع سلم جائز دې. لكه مثلاً په بخاراكې نې هغه غنم مسلم فيه جوړ كړل. كوم چې د بخارا يو كلي،، خشمران،، ارخ ته منسوب دي. او په فرغانه كې نې هغه غنم مسلم فيه مقرر كړل. كوم چې د فرغانه كلي،، بساخ،، ارخ ته منسوب دي. حاصل داچه په بخاراكې بنه غنم ته،، خشمران،، او په فرغانه كې د،، بساخ،، هغې ته وئيلې شي. نوكه خشمراني يا بساخي غنم نې مسلم فيه مقرر كړل. نو ددې څخه به د هغه متعين خايونو غنم مراد نه وي. بلكه ددې مطلب به دا وي. چه غنم بنه وي. لكه څنګه چې د خشمران اود بساخ وي. كه دا ددې ځائې وي. اوكه د بل ځائې وي.

### د بيع السلم شرائط

قَالَ فرمايي وَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ اود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز عقدسلم نه صحيح كېږي شَرَائِطَ خو په اووه شرطونو سره جِنْسٍ مَعْلُومٍ جنس معلوم وي كَقَوْلِنَا حِنْطَةٌ أَوْ شَعِيرٌ لكه زموږ قول غنم يا اوربشې وَنَوْعٍ مَعْلُومٍ و نوع معلوم وي كَقَوْلِنَا سَقِيَّةٌ أَوْ بَخْسِيَّةٌ وَصِفَةٍ مَعْلُومَةٍ لكه زموږ قول سقيه يا بخسيه، او صفت معلوم وي، كَقَوْلِنَا جَيِّدٌ أَوْ رَدِيءٌ وَمِقْدَارٍ مَعْلُومٍ لكه زموږ قول جيد يا ردي، او مقدار معلوم وي كَقَوْلِنَا كَذَا كَيْلًا بِمِكْيَالٍ مَعْرُوفٍ لكه زموږ قول چې په معلوم پيمانه باندې دومره پيمانې وي وَكَذَا وَزْنًا وَأَجَلٍ مَعْلُومٍ يا په دومره اندازه وزن وي. او ميعاد معلوم وي.

حل اللغة: ① الحنطة-غنم-② الشعير-اوربشه-③ جيد-بنه-④ ردي-خراب

تشريح:- سقيه: هغه فصل ته وئيلې شي. كوم چې په اوبوباندې اوبه كولې شي. سقيه (يا بخسيه): هغه فصل دې. كوم چې صرف د باران په اوبو سره اوبه كولې شي. ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه دامام اعظم رحمه الله په نيز د بيع سلم صحيح كيدلو اووه شرطونه دي. په دې كې پنځه شرطونه د امام صاحب او صاحبينو رحمهما الله په مينځ كې متفق عليه دي. او پاته دوې (دوه) مختلف فيه دي. ① جنس معلوم وي. مثلاً دا اووائي. چه مسلم فيه غنم وي. يا به اوربشې وي. ② نوع معلوم وي. مثلاً دا اووائي. چه مسلم فيه داسې غله وي. كوم چې په اوبو سره اوبه شوې وي. يا داسې وي. چه صرف د باران په اوبو سره اوبه شوې وي. ③ صفت معلوم وي. مثلاً دا اووائي. چه مسلم فيه به بنه (كره) وي. يا ردي وي. يا به اوسط درجه والا وي. ④ مقدار معلوم وي. مثلاً دا اووائي. چه مسلم فيه شل رطله وي. يا شل قفيزه وي. يا شل منه وي. بهرحال مسلم فيه چې په كوم پيمانې يا وزن سره مقرر كړې شو. چه هغه پيمانه په خلګو كې مشهوره او په بازاركې مروج وي. ⑤ ميعاد معلوم وي. مثلاً دا اووائي. چه مسلم اليه به شپږ مياشتې روسته مسلم فيه ادا كوي.

وَالْأَصْلُ فِيهِ او اصل هغه حديث دې مَا رَوَيْنَا كوم چې موږ روايت كړې دې وَالْفِقْهُ فِيهِ مَا بَيَّنَّا او په دې كې عقلي دليل هغه دې. كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه ددې شرطونو په سلسله كې اصل هغه حديث دې. كوم چې وړاندې روايت كړې شوې دې. يعنى «من أسلم منكم فليسلم في كيل معلوم و وزن معلوم إلى أجل معلوم» په دې حديث كې اګرچه دوې (دوه) شرطونه ،، مقدار معلوم او ميعاد معلوم،، په صراحت سره ذكر دي. خو دلالةً پاته شرطونه هم ښكاره دي. او عقلي دليل هم وړاندې تيرشوي دې. كه په ذكرشوي شرطونوكې هيڅ يو شرط او نه موندې شي. نود انجام په اعتبار سره به جګړه پيدا شي. او جګړه مفسد د بيع وي. په دې وجه د ذكرشوي شرط موجود كيدل د سلم د صحت لپاره ضروري دي.



### بقيه شرائط

وَمَعْرِفَةُ مِقْدَارِ رَأْسِ الْمَالِ (١) اود راس المال مقدار معلوم وي إِذَا كَانَ يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ عَلَى مِقْدَارِهِ كله چې عقدسلم ددې د مقدار سره متعلق وي كَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ لكه مكيلي، موزوني وَالْمَعْدُودِ او معدودي وَتَسْمِيَةُ الْمَكَانِ الَّذِي يُوفِيهِ فِيهِ (٢) اود هغه ځائې بيانول په كوم (ځائې) كې چې به مسلم فيه اداكوي إِذَا كَانَ لَهُ حَمْلٌ كله چې مسلم فيه دروند بوج وي وَمُؤْنَةٌ او (په دې باندې) خرچه راځي وَقَالَا لَا يَحْتَاجُ إِلَى تَسْمِيَةِ رَأْسِ الْمَالِ او صاحبين رحمهما الله فرمائي چه د راس المال بيانولو ارتيا نشته إِذَا كَانَ مُعَيَّنًا كله چې دا معين وي وَلَا إِلَى مَكَانِ التَّسْلِيمِ اونه د مسلم فيه دسپارلو ځائې بيانولو ته حاجت شته وَيُسَلِّمُهُ فِي مَوْضِعِ الْعَقْدِ او كوم ځائې چې عقد منعقد شو هم هلته كې به سپارلې شي فَهَاتَانِ مَسْأَلَتَانِ نودا دوې (دوه) مسئلې دي وَلَهُمَا فِي الْأُولَى او په رومبۍ مسئله كې د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې أَنَّ الْمَقْصُودَ يَحْصُلُ بِالْإِشَارَةِ چې په اشارې سره مقصود حاصليږي فَأَشْبَهَ الثَّمَنَ وَالْأُجْرَةَ نود ثمن اود اجرت مشابه شو وَصَارَ كَالثَّوْبِ اود كپړې پشان شو.

حل اللغة: ① يوفى-قبض كوي-② الحمل-بوج\بار-③ المؤنة-مشقت-④ الموضع-ځائې

تشريح:- په دې عبارت كې د هغه دوې (دوه) شرطونو بيان دې. په كوم كې چې د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله اود صاحبينو رحمهما الله اختلاف دې. ① كه د عقد تعلق د راس المال مقدار سره وي. يعنى د مسلم فيه اجزاء اود راس المال په اجزاؤ باندې منقسم وي. مثلاً راس المال د مكيلات د قبيلې څخه وي. ياد موزونات د قبيلې څخه وي. ياد معدودات متقاربه د قبيلې څخه وي. نو په كيل يا وزن يا عدد سره ددې مقدار پيژندل ضروري دي. اګرچه راس المال ارخ ته اشاره شوې وي. امام مالك، امام احمد او امام شافعي رحمهم الله هم ددې قائل دي. (عيني) ② كه مسلم فيه داسې شئ وي. چه دا دروند (بوج) وي. اود يوځائې نه بل ځائې ته منتقل كولوكې خرچه راځي. نود هغه ځائې بيانول هم ضروري دي. كوم ځائې چې به مسلم فيه ادا كوي. صاحبين رحمهما الله فرمائي. كه راس المال په اشاره سره متعين شوې وي. نو ددې مقدار بيانول ضروري نه دي. اود مسلم فيه د ځائې بيانول هم ضروري نه دي. بلكه هم هغه ځائې به نې سپاري. كوم ځائې چې عقدسلم واقع شوې دې. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د امام صاحب او صاحبينو رحمهم الله په مينځ كې دوې (دوه) مسئلې مختلف فيه دي.

① په اوله مسئله كې د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه د راس المال مقدار پيژندلو نه مقصود په راس المال سپارلو باندې قادر كيدل دي. اودا مقصود (راس المال ته) د اشارې په ذريعه متعين كولو سره هم حاصليږي. او هركله چې په اشاره سره مقصود حاصليږي. نود كيل يا وزن يا عدد په ذريعه د راس المال مقدار پيژندلو هيڅ ارتيا پاتې نشو. اودا د ثمن او اجرت مشابه شو. يعنى لكه څنګه چې په بيع كې د مقدار بيانولو نه بغير ثمن ارخ ته اشاره كول، او په عقداجاره كې اجرت ارخ ته اشاره كول كافي دي. دغه ډول راس المال ارخ ته اشاره كول كافي دي. ددې مقدار بيانول ضروري نه دي. اودا د كپړې د تهان پشان شو. يعنى كه د كپړې تهان ارخ ته اشاره اوكړې. اودا راس

---

(١) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله من معرفة مقدار راس المال كذا فى ردالمحتار(٢٣٠\١٤) وكنز(٢٣١) والهندية (١٧٨\٣).

(٢) القول الراجح هو هذا قول الإمام رحمه الله من تسمية المكان الذي يوفى فيه الثمن كذا فى ردالمحتار(٢٣٠\١٤) وكنز(٢٣١) والهندية (١٧٨\٣) والقول الراجح فى المسئلة الثانية هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى ردالمحتار(٢٣١\١٤) والخانية (٣٣٣\٢) وكنز (٢٣١) نقلاً عن القول الراجح (٧٨\٢)-

المال مقرر کړی.او ددې دګزونو مقدار بیان نکړي شو.نودا جائز دی.دغه ډول که مکیلی یا موزونی یا معدودی شئ په اشاره سره متعین کړی.اودا راس المال جوړ کړی.نودا هم جائز دی.اګرچه په کیل یا وزن یا عدد سره ددې مقدار نه وی بیان شوی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ اود امام صاحب ﷫ دلیل دادې أَنَّهُ رُبَّمَا يُوجَدُ بَعْضُهَا زُيُوفًا چې ډیر خله بعض دراهم کوټه راوځی وَلَا يَسْتَبْدِلُ فِي الْمَجْلِسِ او هم په دې مجلس کي نشی بدلولې فَلَوْ لَمْ يُعْلَمْ قَدْرُهُ نو که د راس المال مقدار معلوم نه وی لَا يَدْرِي فِي كَمْ بَقِيَ نودا معلومات به اونشی.چه په څومره اندازه پاته دی أَوْ رُبَّمَا لَا يَقْدِرُ عَلَى تَحْصِيلِ الْمُسْلَمِ فِيهِ یا ډیر خله مسلم الیه د مسلم فیه په حاصلولو باندې قادر نه وی فَيَحْتَاجُ إِلَى رَدِّ رَأْسِ الْمَالِ نودې راس المال واپس کاوه ارخ ته محتاج وی وَالْمَوْهُومُ فِي هَذَا الْعَقْدِ كَالْمُتَحَقِّقِ او په دې عقد کي شئ موهوم د متحقق پشان وی لِشُرُوعِهِ مَعَ الْمُنَافِي خکه چې دا سره د نفی مشروع ده.

**حل اللغة:** ① زیوف-کهوټه-② یحتاج-محتاجیږی-③ الموهوم-دکوم څیزچه ګمان کولې شی-④ المتحقق-یقینی

**تشریح:-** د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې.چه د راس المال مقدار مجهول کیدل د مسلم فیه جهالت ته مستلزم دی.په دې طریقه چې د راس المال رقم پیوسته په لړه لړه خرج کوی.نو ډیر خله داسې کیږی.چه د راس المال یوه برخه خرج کاوه نه روسته بعض دراهم کهوټه راوځی.او هم په دې مجلس کي نشی بدلولې.یعنی په کوم مجلس کي چې مسلم الیه کهوټه دراهم رب السلم ته واپس کړی دی.هم په دې مجلس کي د رب السلم نه نور کره دراهم ددې په بدله کي وانخستل.نو په دې صورت کي ئې چې څومره قدرې کهوټه دراهم واپس کړی دی.ددې په اندازه به عقدسلم فاسد وی.او چونکه د پوره راس المال مقدار معلوم نه دې.په دې وجه به دا هم معلومه نشی.چه کهوټه دراهم د راس المال کومه برخه ده.نیمه ده.یا دریمه ده.اوکه څلورمه ده.اوهرکله چې دا معلومه نشوه.نودا به هم نه معلومیږی.چه عقدسلم په څومره مسلم فیه کي کم شو.او په څومره کي پاته دې.او ددې نه د مسلم فیه مقدار مجهول کیدل ښکاره دی.اود مسلم فیه مقدار مجهول کیدل بالاتفاق مفسد سلم دی.خکه به په ذکرشوی صورت کي بیع سلم فاسد وی.اوکه د راس المال مقدار معلوم وی.نود کهوټه دراهمو په وزن سره به معلومه شی.چه بیع سلم په څومره مسلم فیه کي کم شو.او په څومره کي پاته دې.مثلاً د راس المال دراهم یو کلو دی.او ددې نه د خرج کاوه نه روسته څه دراهم کهوټه اوختل.نودا کهوټه دراهم به وزن کولې شی.مثلاً که کهوټه دراهم دوې (دوه) نیم سوه ګرامه وی.نو معلومه شوه.چه کهره دراهم اونیم سوه ګرامه یعنی د پوره راس المال ¾ دی.نود څلورمې برخې (حصې) د مسلم فیه بیع سلم به فسخ شی.او په پاته درې حصو کي به پاته وی.نود راس المال مقدار معلومیدلو په صورت کي چونکه د مسلم فیه مجهول کیدل نه لازمیږی.خکه به په دې صورت کي بیع سلم صحیح وی.اود راس المال مقدار مجهول کیدلو سره چونکه دمسلم فیه مجهول کیدل لازمیږی.په دې وجه په دې صورت کي بیع سلم فاسدیږی.

ﷺ **ولایستبدل في المجلس....الخ** نه معلومیږی.که مسلم الیه د کهوټه دراهمو په بدله کي هم په دې مجلس کي کهره دراهم واخستل.په کوم مجلس کي ئې چې کهوټه دراهم واپس کړي دی.نو بیع سلم به فاسد نه وی.حالانکه داسې نه ده.بلکه ددې تفصیل دادې.که د نصف دراهمو نه کم کهوټه وی.نو په کوم مجلس کي چې دا رب السلم ارخ ته واپس شوی دی.که په دې مجلس کي ئې ددې په بدله کي کهره دراهم واخستل.نود احنافو ﷭ په نیز بالاتفاق بیع سلم صحیح وی.اوکه د راس المال دراهم د نیم نه زیات کهوټه اوختل.اودا ئې واپس کړل.اوهم په دې مجلس کي ئې کهره دراهم واخستل.نود امام ابوحنیفه ﷫ په نیز به بیع سلم فاسد وی.خکه چې امام صاحب ﷫ د نصف راس المال نه په زیات کي تبدیلول جائز نه ګڼړی.البته د صاحبینو ﷭ په نیز به بیع سلم په دې صورت کي هم جائز وی.

ﷺ د فساد دویمه وجه داده.چه کله کله مسلم الیه د مسلم فیه حاصلولو نه عاجزه کیږی.نو په داسې صورت کي



مسلم الیه باندې راس المال واپس کول ضروری وی.اود راس المال مقدار چونکه مجهول دې.په دې وجه راس المال واپس کول هم متعذر شو.اوکله چې د مسلم فیه ادا کاوه نه دعاجز کیدلو په صورت کي دمجهول المقدار راس المال واپس کول معتذرشو.نو ضروری ده.چه د راس المال مقدار معلوم وی.او هرکله چې د راس المال مقدار،په دې مقصد چې دعاجز کیدلو په صورت کي واپس کول ممکن وی) معلومیدل ضروری دی.نود مقدار مجهول کیدلو په صورت کي به بیع سلم فاسد وی.که دا اعتراض اوکړې شی.چه د راس المال بعض دراهم کهوټه ختل،یا د مسلم الیه مسلم فیه حاصلولو نه عاجز راتګ ،یو موهوم امر دې.او موهوم امر معتبر نه وی.خاص کر به داسې خانې کي چې د هغې مدار په رخصت وی.اود بیع سلم مدار چونکه په رخصت باندې دې.خکه به په بیع سلم کي د هیڅ موهوم امر اعتبارنشی کولې.او هرکله چې ذکرشوې موهوم امر معتبر نه دې.نود راس المال مقدار مجهول کیدلو سره به بیع سلم هم فاسد نه وی.ددې څواب دادې.چه په بیع سلم کي امرموهوم د متحقق پشان وی.خکه چې بیع سلم خلاف قیاس دمنافی بیع کیدلو باوجود مشروع شوې دې.خکه چې په بیع سلم کي مسلم فیه یعنی مبیع معدوم وی.اود مبیع معدوم کیدل دجواز منافی دې.اوکوم شئ چې خلاف قیاس مشروع وی.په هغې کي احتیاط واجب وی.په دې وجه په بیع سلم کي احتیاطاً امر موهوم د متحقق اوموجود په مرتبه کي اوګڼړلې شو.او بیع سلم فاسد اوګرخولې شوه.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ رَأْسُ الْمَالِ ثَوْبًا په خلاف ددې کله چې راس المال تهان وی لِأَنَّ الذَّرْعَ وَصْفٌ فِيهِ خکه چې په تهان کي د ګزونو بیان یو وصف دې لَا يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ عَلَى مِقْدَارِهِ ددې په مقدار باندې عقد نه متعلق کیږی وَمِنْ فُرُوعِهِ او ددې د فروع نه یوه مسئله داده إِذَا أَسْلَمَ فِي جِنْسَيْنِ که په دوې (دوه) جنسونو کي ئې بیع سلم اوکړو وَلَمْ يُبَيِّنْ رَأْسَ مَالِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او په دې کي ئې د هریو راس المال بیان نکړو. أَوْ أَسْلَمَ جِنْسَيْنِ یائې د دوې (دوه) جنسونو عقدسلم اوکړو وَلَمْ يُبَيِّنْ مِقْدَارَ أَحَدِهِمَا او په دې کي ئې د کوم یو مقدار بیان نکړو.

**تشریح:-** دا عبارت د صاحبینو ﷭ د قیاس ﴿وصار کالثوب....﴾ څواب دې.حاصل د څواب دادې.چه راس المال د کپړې داسې تهان وی.چه ددې د ګزونو مقدار معلوم نه وی.نو بیع سلم خکه جائز دې.چه په کپړو کي دګزونو بیان یو وصف دې.چه ددې مقدار سره عقدنه متعلق کیږی.هم داوجه ده.که ګزونه د بیان شوی مقدار نه زیات شو.نو زیاتوالې د مشتری لپاره وی.او که کم اوختل.نود کموالی په وجه د ثمن نه هیڅ نشی کمولې.بهرحال د ګزونو مقدار سره عقد نه متعلق کیږی.او زموږ کلام په داسې راس المال کي دې.چه ددې مقدار سره عقدمتعلق کیږی.نو ددې توپیر په موجودګئ کي د کپړې په تهان باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې.

ﷺ علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.چه د امام صاحب او صاحبینو ﷭ په مینځ کي د اختلاف په فروعو کي یوه مسئله داده.که د سلو دراهمو،یو کُر غنمو او یو کُر اوربشو کي عقدسلم اوکړو.یعنی یو کُر غنم او یو کُر اوربشې ئې مسلم فیه مقرر کړلو.او سل دراهم ئې راس المال مقرر کړلو.او په دې دواړو کي ئې د هر یو راس المال جلا جلا بیان نکړلو.نود حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز به دا بیع سلم جائز نه وی.اود صاحبینو ﷭ په نیز جائز دې.

ﷺ د امام صاحب ﷫ دلیل دادې.سل دراهم به په غنمو او اوربشو باندې د قیمت په اعتبار سره تقسیمولې شی.اود قیمت پیژندل چونکه په اندازه سره کیږی.خکه به په دې کي د هریو د راس المال مقدار نه معلومیږی.

ﷺ دصاحبینو ﷭ دلیل دادې.چه عین شئ ارخ ته اشاره کول،د عقد دجواز لپاره کافی وی.او هغه اوموندې شو.خکه به په دې صورت کي بیع سلم جائز وی.یا ئې د دوې (دوه) جنسونو عقدسلم اوکړلو.او په دې کي ئې د یو مقدار بیان نکړلو.مثلاً د دراهم او دنانیرو ئې په یو کُر غنمو کي عقدسلم اوکړلو.او په دارهمو او دنانیرو کي د یو مقدار معلوم شو.اود بل مقدار معلوم نشو.نود امام صاحب ﷫ په نیز به دا بیع سلم ناجائز وی.خکه چې کله د یو مقدار مجهول دې.نو ددې په برخه کي به عقدسلم باطل وی.اوهرکله چې په یوه برخه کي عقدسلم باطل شو.نود بل په برخه کي به هم عقدسلم باطل وی.خکه چې صفقه یوه ده.اود صاحبینو ﷭ په نیز جائز ده.خکه چې اشاره اوموندې شوه.په دې طریقه چې رب السلم دا اووئیل.چه ما تا سره په دې لس دراهمو او ددې دنانیرو عقدسلم

اوکړلو.یا ددې لس دنانیرو او ددې دراهمو عقدسلم اوکړلو.او وړاندې تیرشوی دی.چه د عقد دجواز لپاره عین
شئ ته اشاره کول کافی دی.

**د مکان عقد په تعین کښې د امامانو اختلاف**

وَالثَّانِيَةُ او په دویمه مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّ مَكَانَ الْعَقْدِ يَتَعَيَّنُ چې د سپارلو لپاره د
عقدخانې خکه متعین دې لِوُجُودِ الْعَقْدِ الْمُوجِبِ لِلتَّسْلِيمِ چې عقد کوم چې په مکان د عقد کې سپارل واجبونکې
دې.هغه اوموندې شو وَلِأَنَّهُ لَا يُزَاحِمُهُ مَكَانٌ آخَرُ فِيهِ او خکه چې بل کوم خانې ددې مقابل نه دې فَيَصِيرُ نَظِيرَ أَوَّلِ أَوْقَاتِ
الْإِمْكَانِ فِي الْأَوَامِرِ نودا به په اوامروکې د اول وخت د امکان مثال شی فَصَارَ كَالْقَرْضِ وَالْغَصْبِ اودا د پور او
غصب پشان شو.

**حل اللغة:** ① الموجب-واجبونکې-② التسلیم-سپارل-③ یزاحم-مقابله\کنړوالې-④ یصیر-ګرځی

**تشریح:**- په دویمه اختلافی مسئله کې یعنی په دې اړه کې چې د مسلم فیه سپارلو لپاره مکان عقد متعین دې.د
صاحبینو رحمهما الله ① دلیل دادې.چه عقدسلم کوم چې د مسلم فیه سپارل واجبونکې دی.دا هم په دې خانې کې موجود
شوې دې.نو په کوم خانې کې چې عقدموجب التسلیم اوموندې شو.هم په دې خانې کې به مسلم فیه سپارل واجب
وی.اوهرکله چې په مکان عقدکې دمسلم فیه سپارل واجب شو.نود مسلم فیه سپارلو لپاره د بل خانې بیانول
ضروری نه دی.لکه مثلاً یو کس په یوکلی کې متعین غنم واخستل.نو په بائع به هم په دې خانې کې سپارل لازم
وی.کوم خانې چې ده خرځ کړی دی.نو هم دغه ډول کوم خانې کې چې عقدسلم واقع شوې دې.هم په دې خانې کې
به په مسلم الیه باندې د مسلم فیه سپارل لازم وی.② دوهم دلیل دادې.چه د مسلم فیه سپارل د خانې محتاج
وی.اود مسلم فیه په سپارلوکې واړه خایونه برابر دی.یو ته په بل باندې ترجیح نه وی.البته د عقدخانې ته د عقد
په وجه چونکه ترجیح حاصل ده.ددې هیڅ مقابل نشته.په دې وجه دمسلم فیه سپارلو لپاره به د عقدخانې متعین
وی.اودا داسې ده.لکه څنګه چې د لمونځ د وخت اول جزء د مقابل نه کیدلو په وجه د لمونځ د نفس وجوب سبب
وی.اودا د پور او غصب پشان شو.یعنی لکه څنګه چې د پور ادا کاوه لپاره د پور خانې متعین دې.اود مال
مغصوبه اداکاوه لپاره د غصب خانې متعین دی.دغه ډول د مسلم فیه ادا کاوه لپاره د عقدسلم خانې متعین دې.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې أَنَّ التَّسْلِيمَ غَيْرُ وَاجِبٍ فِي الْحَالِ چې مسلم فیه فی الحال سپارل
چونکه واجب نه دی فَلَا يَتَعَيَّنُ خکه به د عقدمکان متعین نه وی بِخِلَافِ الْقَرْضِ وَالْغَصْبِ په خلاف د پور او غصب
وَإِذَا لَمْ يَتَعَيَّنْ او هرکله چې متعین نشو فَالْجَهَالَةُ فِيهِ تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو ددې جهالت به،،مفضی الی المنازعه،،
وی لِأَنَّ قِيَمَ الْأَشْيَاءِ تَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمَكَانِ خکه چې د خیزونو قیمتونه د خانې په اختلاف سره مختلف کیږی. فَلَا بُدَّ
مِنَ الْبَيَانِ نو بیانول به ضروری وی وَصَارَ كَجَهَالَةِ الصِّفَةِ او صفت دمجهول کیدلو پشان شو.

**تشریح:**- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه په عقدسلم کې چونکه د اجل او میعاد کیدل شرط دی.په دې
وجه فی الحال یعنی د عقدسلم په وخت د مسلم فیه سپارل نه واجبیږی.بلکه د میعاد په پوره کیدلو باندې سپارل
واجبیږی.او هرهغه شئ چې د هغې فی الحال سپارل واجب نه وی.د هغې د سپارلو لپاره د عقدخانې نه متعین
کیږی.نو ثابته شوه.چه د مسلم فیه سپارلو لپاره د عقدخانې متعین نه دی.په خلاف د پور او غصب.خکه چې په
پور او غصب کې فی الحال سپارل واجب دی.هم دا وجه ده.چه په قرضه کې د میعاد په مقررولو سره میعاد نه
مقرریږی.بلکه پور ورکونکې که د پور ور کاوه نه فوراً روسته د قرضه واپس کاوه مطالبه اوکړی.نو په قرضدار به
هم په دې خانې کې هم په دې وخت واپس کول واجب وی.او پاتې شو غصب نو په دې کې د غصب نه فوراً روسته د
شئ مغصوبه واپس کول واجبیږی.بهرحال هرکله چې په پور او غصب کې فی الحال سپارل واجب دی.نود پور او
شئ مغصوبه واپس کاوه او سپارلو لپاره به د پور اود غصب خانې متعین وی.او په عقدسلم کې چونکه فی الحال
مسلم فیه سپارل واجب نه دی.په دې وجه د مسلم فیه سپارلو لپاره به د عقدخانې متعین نه وی.اوهرکله چې د



مسلم فیه سپارلو لپاره د عقدخانې متعین نه دې.نود مسلم فیه سپارلو دخانې مجهول کیدلو په وجه به د انجام
په اعتبار سره جګړه پیدا کیږی.خکه چې د خایونو په اختلاف سره د اشیاؤ قیمتونه مختلف وی.نو رب السلم به
په داسې خانې کې مطالبه کوی.کوم خانې چې د مسلم فیه قیمت زیات او ګران وی.او مسلم الیه به ئې داسې
خانې کې سپاری.کوم خانې چې د مسلم فیه قیمت کم نه کم وی.اودا د مسلم فیه صفت مجهول کیدلو پشان
شو.یعنی لکه څنګه چې د مسلم فیه صفت مجهول کیدلو په صورت کې بیع سلم جائز نه وی.نو هم دغه ډول د
سپارلو د خانې مجهول کیدلو په صورت کې به هم بیع سلم جائز نه وی.او هرکله چې د سپارلو د خانې مجهول
کیدلو سره بیع سلم جائز نه وی.نود مسلم فیه سپارلو لپاره به د خانې بیانول هم ضروری وی.

ة حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د صاحبینو رحمهما الله بیان شوې دلیل بې وزن کاوه کې فرمائی.که عقدسلم د سمندر په
مینځ کې په کښتئ کې منعقد کړې شو.نو په میعاد پوره کیدلو باندې به د مسلم فیه سپارلو لپاره به آیا د
عقدخانې متعین وی.یعنی تاسو چې دا وایئ چه د مسلم فیه د سپارلو لپاره د عقدخانې متعین دې.نو په داسې
صورت کې اووایئ چه مسلم فیه به کوم خانې کې سپاری؟

**مکان ایفاء اود امامانو اختلاف**

وَعَنْ هَذَا قَالَ مَنْ قَالَ مِنَ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللَّهُ او هم ددې خانې نه په مشائخوکې چې چا اووئیل.داسې ئې اووئیل
إِنَّ الِاخْتِلَافَ فِيهِ عِنْدَهُ يُوجِبُ التَّحَالُفَ چې د امام صاحب رحمه الله په نیز دمسلم فیه په خانې کې اختلاف کول خپل منځ کې
قسم واجبوی كَمَا فِي الصِّفَةِ لکه څنګه چې په صفت کې دی وَقِيلَ عَلَى عَكْسِهِ او ونیلی شوی دی.چه ددې په عکس
دې لِأَنَّ تَعَيُّنَ الْمَكَانِ قَضِيَّةُ الْعَقْدِ عِنْدَهُمَا خکه چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز مکان متعین کول د عقد مقتضی ده.

**حل اللغة:** ① قضیة-تقاضا\مطالبه-② نصف-نیم-③ نصیب-حصه-④ مؤنة-خرچه

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه جهالتِ مکان چونکه د جهالتِ وصف پشان دې.(یعنی لکه څنګه چې د
کهره والی او ردی کیدلو صفت په اختلاف سره قیمت مختلف کیږی.دغه ډول د مکان تسلیم په اختلاف سره هم
قیمت مختلف کیږی) په دې وجه بعض مشائخو ونیلی دی.چه د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مسلم فیه
سپارلو په خانې کې د رب السلم او مسلم الیه اختلاف تحالف واجبوی.یعنی که رب السلم وائی.چه د مسلم فیه
ادا کاوه لپاره دیوبند متعین شوې وو.او مسلم الیه دعوه کوی.چه سهارنپور متعین شوې وو.او ګواهان دچا سره
هم موجود نه دی.نو په داسې صورت کې به د دواړو نه قسم اخستلې شی.اوکه یو قسم اوخوړلو.او دوهم انکار
اوکړلو.نود قسم منکر په خلاف به فیصله ورکولې شی.اوکه دواړو قسم اوخوړلو.نو بیع سلم به فسخ کیږی.لکه
څنګه چې د بیع سلم د احدالبدلین په صفت کې د عاقدینو د اختلاف په صورت کې په دواړو باندې قسم
واجبیږی.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز مکان عقد چونکه د مسلم فیه ادا کاوه لپاره متعین دې.په دې وجه د صاحبینو
رحمهما الله په نیز به اختلاف د تحالف موجب نه وی.اود بعض مشائخ په نیز تحالف نه واجبوی.بلکه د مسلم الیه قول به
معتبر وی.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز د دواړو قسم واجبوی.

ة د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه مکان عقد د مسلم فیه ادا کاوه لپاره متعین کیدل د عقد مقتضی دې.نود مسلم
فیه ادا کاوه په خانې کې اختلاف کول داسې دی.لکه په نفس عقدکې اختلاف کول.او په نفس عقدکې اختلاف
چونکه بالاجماع تحالف واجبوی.په دې وجه د مسلم فیه ادا کاوه په خانې کې اختلاف کول به هم تحالف واجبوی.

ة د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې.چه د مسلم فیه ادا کاوه خانې متعین کیدل،چونکه د عقد مقتضی نه دی.په دې
وجه دا په منزله د میعاد شو.اوپه میعاد کې د عاقدینو اختلاف چونکه تحالف نه واجبوی.په دې وجه د مسلم فیه
ادا کاوه په خانې کې به اختلاف کول هم تحالف نه واجبوی.بلکه مسلم الیه په چاچه مسلم فیه اداکول واجب
دی.دده قول به معتبر وی.

وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الثَّمَنُ وَالْأُجْرَةُ وَالْقِسْمَةُ او هم په دې اختلاف باندې ثمن، اجرت،او بتواره (تقسیم) دی وَصُورَتُهَا إِذَا
اقْتَسَمَا دَارًا اود بتوارې صورت دادې.چه دواړو خپل مشترک کور ویش کړو وَجَعَلَا مَعَ نَصِيبِ أَحَدِهِمَا شَيْئًا لَهُ او دواړو یوې

برخې (حصې) سره داسې شئ ملاؤ کړو حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ چې ددې لپاره بوج اوړل او خرچه ده وَقِيْلَ لَايُشْتَرَطُ ذٰلِكَ فِي الثَّمَنِ
او وئيلى شوى دى.چه د ثمن په صورت کې دا شرط نه دې ذٰلِكَ فِي الثَّمَنِ او وئيلى شوى دى.چه د ثمن په صورت
کې دا شرط نه دې وَالصَّحِيْحُ أَنَّهُ يُشْتَرَطُ او صحيح داده.چه د امام صاحب رحمه الله په نيز د ثمن ادا کاوه خائې بيانول) شرط
دى إِذَا كَانَ مُؤَجَّلًا، په دې شرط چې ثمن ميعادى وى وَهُوَ اخْتِيَارُ شَمْسِ الْأَئِمَّةِ السَّرْخَسِيِّ رحمه الله اوهم دا د شمس الائمه
سرخسى رحمه الله خوښ مذهب دې وَعِنْدَهُمَا يَتَعَيَّنُ مَكَانُ الدَّارِ وَمَكَانُ تَسْلِيْمِ الدَّابَّةِ لِلْإِيْفَاءِ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز ادا
کاوه لپاره د کور خائې او د خاروى سپارلو خائې متعين دې.

تشريح:- هم دا اختلاف په ثمن، اجرت او بتواره (تقسيم) کې دې.د ثمن صورت دادې.چه يوسړى لس منه بنه غنمو
په عوض يوکور په پور واخستلو.يعنى د لس منه غنمو ادا کاوه لپاره ئې دوې (دوه) مياشتې ميعاد مقرر کړلو.نود
امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز لس منه غنمو ادا کاوه لپاره خائې مقررول ضرورى دى.که د ادا کاوه مقام ئې بيان کړلو.نو
جائز ده.ګنى جائز نه ده.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د ادا کاوه خائې بيانول شرط نه دى.بلکه کوم خائې کې چې عقد
واقع شوې دې.هم دغه خائې کې به لس منه غنم ادا کوى.دغه ډول که د لس منه غنمو په عوض ئې کور په کرايه
باندې واخستلو.يا ئې حيوان (څاروې) په کرايه باندې واخستلو.نود امام صاحب رحمه الله په نيز د مکان ادا بيانول
ضرورى دى.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د ادا کاوه خائې بيانول ضرورى نه دى.بلکه کوم خائې چې د کرايه کور
دې.هم دغه خائې د لس منه غنمو سپارلو لپاره متعين دې.اوکوم خائې ئې چې حيوان (څاروې) سپارلې دې.هم
دغه خائې کې به د اجرت لس منه غنم ادا کوى.اود بتوارې صورت دادې.چه دوې (دوه) سړو خپل مشترکه کور
ويش کړلو.او په يوه برخه کې ئې داسې شئ ملاؤ کړلو.چه د هغې د بوجه اوړلو کرايه اوخرچه راځى.يعنى ددې په
منتقل کولو کې خرچه راځى.نو د حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز ددې شئ د ادا کاوه دخائې بيانول ضرورى دى.اود
صاحبينو رحمهما الله په نيز دا شرط نه دې.بلکه په کوم خائې کې چې بتواره (تقسيم) شوې ده.هم دغه خائې متعين
دې.بعض مشائخو وئيلى دى.چه د ثمن په صورت کې بالاجماع مکان ادا بيانول شرط نه دى.خوصحيح داده.چه د
امام صاحب رحمه الله په نيز د ثمن ادا کاوه خائې بيانول شرط دى.په دې شرط چې ثمن ميعادى پور وى.او ددې په
منتقل کولو کې خرچه راځى.دا شمس الائمه سرخسى رحمه الله اختيار کړې دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز چې کوم خائې د
مکان بتواره وى.هم هلته کې به هغه شئ اداکوى.کوم چې يوې برخې (حصې) سره ملاؤ شوې دې.او حيوان (څاروې)
په اجرت باندې اخستلو په صورت کې چې کوم خائې کې حيوان (څاروې) سپارلې شوې دې.هم هلته کې به اجرت
ادا کوى.

## د غير منتقل کېدونکي څيز لپاره د مکان ايفاء حکم

قَالَ فرمايي وَمَا لَمْ يَكُنْ لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ اود کوم شئ لپاره چې هيڅ بوج اوړل او خرچ نه وى لَايَحْتَاجُ فِيْهِ إِلٰى بَيَانِ
مَكَانِ الْإِيْفَاءِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاجماع د هغې لپاره د مکان ادا بيانول ضرورى نه دى لِأَنَّهُ لَا تَخْتَلِفُ قِيْمَتُهُ خکه چې ددې
قيمت نه مختلف کيږى وَيُوْفِيْهِ الْمَكَانَ الَّذِيْ أَسْلَمَ فِيْهِ او کوم خائې ئې چې عقدسلم کړې دې.هم هلته کې به هغه
شئ اداکوى قَالَ رضي الله عنه فاضل مصنف رحمه الله فرمايي وَهٰذِهِ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ وَالْبُيُوْعِ چې دا د جامع صغير اود مبسوط کتاب
البيوع روايت دې وَذُكِرَ فِي الْإِجَارَاتِ اود مبسوط په کتاب الاجارات کې امام محمد رحمه الله ذکر کړې دى أَنَّهُ يُوْفِيْهِ فِيْ أَيِّ
مَكَانٍ شَاءَ چې په کوم خائې کې غواړى.ادا دې کړى وَهُوَ الْأَصَحُّ هم دا زيات صحيح دى لِأَنَّ الْأَمَاكِنَ كُلَّهَا سَوَاءٌ خکه
چې واړه خايونه برابر دى.

تشريح:- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائى.که مسلم فيه داسې شئ وى.په کوم چې د يوخائې نه بل خائې ته په منتقل
کولو کې خرچه نه راځى.مثلاً مشک، کافور، زعفران.نو ددې د سپارلو لپاره بالاجماع د يوخائې متعين کول واجب
نه دى.خکه چې د داسې شئ قيمت د خايونو په اختلاف سره نه مختلف کيږى.نو ددې په حق کې واړه خايونه برابر
دى.پاتې شوه داخبره چې هرکله دداسې مسلم فيه سپارلو لپاره د خائې متعين کول واجب نه دى. نود مسلم فيه



ادا کاوه لپاره به آيا مکان عقد متعين وى.او که متعين به نه وى؟ په دې اړه کې دوې (دوه) روايتونه دى.① د
جامع صغير او مبسوط د ،،کتاب البيوع،، روايت دادې.چه مکان عقدمتعين دې.يعنى کوم خائې کې چې
عقدسلم واقع شوې دې.هم دغه خائې کې به مسلم فيه اداکوى.خکه چې مکان عقد موضع التزام دې.يعنى مسلم
اليه د مسلم فيه سپارل پخپل خان باندې هغه خائې کې لازم کړى دى.کوم خائې چې عقدسلم واقع شوې دې.نو
دې خائې ته به په نورو خايونو باندې ترجيح ورکولې شى.② اود مبسوط د ،،کتاب الاجارات،، روايت دا دې.چه
د مسلم فيه ادا کاوه لپاره مکان عقد متعين نه دې.بلکه په کوم خائې کې ئې چې زړه غواړى.ادا دې کړى.اوهم دا
اصح روايت دې.خکه چې په کوم شئ کې منتقل کول او خرچه نه وى.اود خايونو په اختلاف سره ددې قيمت نه
مختلف کيږى.په دې وجه ددې په حق کې واړه مقامات برابر دى.او هرکله چې واړه مقامات برابر دى.نود مسلم
فيه ادا کاوه لپاره به مکان عقد يا بل کوم خائې متعين نه وى.

وَلَا وُجُوْبَ فِي الْحَالِ او وجوب فى الحال نشته.

تشريح:- دا عبارت د جامع صغير اود مبسوط د ،،کتاب البيوع،، روايت خواب دې.حاصل د خواب دادې.چه
مسلم اليه د مسلم فيه سپارل بلاشبه په مکان عقدکې خپل خان باندې لازم کړى دى.خو فِي الْحَال چونکه ددې
سپارل واجب نه دى.په دې وجه به د سپارلو لپاره مکان عقد متعين نه وى.علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د کوم
مسلم فيه منتقل کولو کې د بوج اوړلو خرچه نه راځى.ددې د سپارلو لپاره رب السلم او مسلم اليه که خپل مينځ
کې په اتفاق سره کوم مکان متعين کړلو.نو آيا دا مکان به متعين وى. اوکه متعين به نه وى؟په دې اړه کې دوې
(دوه) روايتونه دى.① يو روايت دادې.چه نه متعين کيږى.خکه چې هرکله مسلم فيه داسې شئ دې.چه ددې په
منتقل کولو کې خرچه نه راځى.نو ددې د سپارلو لپاره د هيڅ يوخائې متعين کاوه فائده نه وى.او هرکله چې د
متعين کاوه هيڅ فائده نشته.نو يوخائې د متعين کاوه سره به نه متعين کيږى.② دوهم روايت دادې.چه د رب
السلم او مسلم فيه په متعين کولو سره د مسلم فيه د سپارلو خائې متعين کيږى.او هم دا زيات صحيح روايت
دې.خکه چې د متعين کاوه فائده د رب السلم په حق کې ښکاره کيږى.په دې طريقه چې د رب السلم څخه به د
لارې خطره ساقط شى.مثلاً يو خائې داسې دې.چه د هغه خائې نه په منتقل کولو کې شوکمارانو او لوټمارانو خطره
ده.اوپه بل خائې کې داخطره موجود نه ده.نو په داسې صورت کې د سپارلو خائې متعين کاوه سره د لارې خطره
چونکه ختميږى.په دې وجه ددې فائدې په لحاظ د مسلم فيه سپارلو خائې متعين کاوه سره متعين کيږى.

وَلَوْ عَيَّنَا مَكَانًا او که رب السلم او مسلم فيه کوم خائې متعين کړو قِيْلَ لَا يَتَعَيَّنُ نو وئيلى شوى دى.چه نه به متعين
کيږى لِأَنَّهُ لَا يُفِيْدُ خکه چې دې کې هيڅ فائده نشته وَقِيْلَ يَتَعَيَّنُ (1) او وئيلى شوى دى.چه متعين کيږى لِأَنَّهُ يُفِيْدُ سُقُوْطَ
خَطَرِ الطَّرِيْقِ خکه چې دا متعين کول به د لارې د خطرې ساقطيدلو فائده ورکوى.

حل اللغة: ① سقوط-ساقط کيدل-② يتعين-معين کيږى-③ خطر-خطره-④ الطريق-لار

تشريح:- عبارت واضح دې.

وَلَوْ عَيَّنَ الْمِصْرَ او که کوم يو ښار ئې متعين کړو فِيْمَا لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ په داسې شئ کې د کوم لپاره چې بوج اوړل او خرچه
وى يُكْتَفٰى بِهِ نو په دې به اکتفاء کولې شى.(کوم چې مونږ ذکر کړل). لِأَنَّهُ مَعَ تَبَايُنِ أَطْرَافِهِ كَبُقْعَةٍ وَاحِدَةٍ فِيْمَا ذَكَرْنَا خکه
چې ښار خپل اطرافو د جدايئ باوجود يو موضع دې.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د کوم مسلم فيه په منتقل کولو کې خرچه راځى.ددې د سپارلو لپاره که يو
ښار متعين کړې شو.مثلاً رب السلم د مسلم فيه سپارلو لپاره د سهارنپور ښار متعين کړلو.نودا کافى ده.ددې

---

(1) القول الراجح هو هذا قول الثانى (يعنى التعيين) كذا فى فتح القدير (٦/٢٣١١٤) والدر المختار (٦/٢١٦) والبحر (٦/٢١٦) نقلاً عن القول الراجح (٢/٧٩)-

محله متعين كول شرط نه دي.ځكه چې د ښار طرفونه او اړخونه اګرچه متباين دي.خو په دې كې قيمتونو اختلاف نه وي.په دې وجه ددې تولې محلې او طرفونه د يوځائې پشان دي.چه په كومه محله او اړخ كې نې چې اداكړي جائز به وي.په محيط كې دي.چه د ښار واړه طرفونه او اړخونه د يوځائې پشان هغه وخت دي.چه ښار لوئې نه وي.كه ددې دواړو غاړو په مينځ كې د يو فرسخ فاصله وي.نو ددې د محلې او غاړې بيانول هم ضروري دي.كه بيان نې نكړي.نو عقدسلم به جائز نه وي.ځكه چې په دې كې داسې جهالت دې.چه،،مفضى الى المنازعه،، دې.خو ښكاره داده.چه زموږ په ملكونو كې د دومره ډير توپير باوجود هم په قيمت كې دومره زيات تفاوت نه وي.كوم چې معتبر وي.په دې وجه ښار كه هرڅومره لوئې وي. ددې طرفونه او غاړې به د يوځائې پشان وي.صرف د ښار بيانول به كافي وي.ددې محله او طرفونه بيانول ضروري نه دي.

**په عقدسلم كښې په راس المال د قبضه حكم**

قَالَ وَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ او سلم صحيح نه دې حَتَّى يَقْبِضَ رَأْسَ الْمَالِ قَبْلَ أَنْ يُفَارِقَهُ فِيهِ ترڅو چې هم په دې مجلس كې د جداكيدلو نه وړاندې راس المال باندې قبضه اوكړي أَمَّا إِذَا كَانَ مِنَ النُّقُودِ بهرحال كله چې راس المال د نقود دجنس څخه وي فَلِأَنَّهُ افْتِرَاقٌ عَنْ دَيْنٍ بِدَيْنٍ نو ځكه چې دا د دين بدين( د پور بيع د پور په عوض) نه جداكيدل دي وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنِ الْكَالِئِ بِالْكَالِئِ(١) حالانكه رسول الله ﷺ د پور په عوض د پور بيع نه منع فرمائيلې ده وَإِنْ كَانَ عَيْنًا اوكه راس المال د قبيلې د اعيان څخه وي فَلِأَنَّ السَّلَمَ أَخْذُ عَاجِلٍ بِآجِلٍ نو ځكه چې سلم معجل د موجل په عوض اخستل دي. إِذِ الْإِسْلَامُ وَالْإِسْلَافُ يُنْبِئَانِ عَنِ التَّعْجِيلِ اوځكه چې سلم او سلف كول د في الحال خبر وركوي فَلَا بُدَّ مِنْ قَبْضِ أَحَدِ الْعِوَضَيْنِ نو په احدالعوضين باندې قبضه كول ضروري دي. لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى الِاسْمِ پاره ددې چې د اسم معنى ثابته شي

حل اللغة: ① يفارق-جدا كيږي-② الكالي-قرض-③ عاجل-في الحال-④ الآجل-نيته

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه عقدسلم به هغه وخت صحيح وي.چه رب السلم او مسلم فيه دواړه د جداكيدلو نه مخكې مسلم اليه په راس المال باندې قبضه اوكړي.حاصل داچه په مجلس د عقد كې د عاقدينو جداكيدلو نه وړاندې د مسلم اليه په راس المال باندې قبضه كول ضروري دي.ځكه چې راس المال د دوې (دوه) حالو نه خالي نه وي.ياخوبه دا د قبيلې د نقود يعنى د دراهم او دنانيرو د جنس څخه وي.يا به د قبيلې د اعيان يعنى د ځاروو او كپړو د جنس څخه وي.كه اول وي.نو په دې صورت كې د دين بدين بيع يعنى د پور بيع به د پور په عوض شي.ځكه چې په راس المال باندې هركله په مجلس عقد كې قبضه اونكړې شوه.نو راس المال هم د نقود د قبيلې څخه كيدلو په وجه دين غيرمعين شو.او مسلم فيه هم پور يعنى د مسلم اليه په ذمه دين وي.نودا د دين بيع د دين په عوض يعنى د پور بيع د پور په عوض شوه.حالانكه رسول الله ﷺ د كالى، باكالى، يعنى د پور په عوض د پور بيع نه منع فرمائيلې ده.هم دا قول د امام شافعي اود امام احمد رحمه الله دې.نو ثابته شوه.كه راس المال نقد وي.نو په دې باندې په مجلس عقدكې قبضه كول ضروري دي.او امام مالك رحمه الله فرمائيلي دي.كه راس المال د نقود د قبيلې څخه وي.او په دې باندې په مجلس عقدكې قبضه اونكړې شوه.بلكه تاخير اوشو.نودا جائز دي.په دې شرط چې د اجل او ميعاد شرط نې نه وي لګولې.ځكه چې د اجل او ميعاد شرط لګولو نه بغير صرف د قبضه په تاخير سره راس المال په عرف كې دين نه وي.اوهركله چې صرف په تاخير سره دين نه وي.نودا به د دين بدين بيع هم نه وي.او كه دوهم وي.يعنى راس المال معين شئ وي.نو په مجلس عقدكې قبضه كول ځكه ضروري دي.چه سلم وائي معجل د موجل په عوض اخستل.يعنى په سلم كې راس المال معجل او فوري وي.او مسلم فيه موجل او

(٢) من حديث ابن عمر رضي الله عنه أخرجه ابن أبى شيبة وإسحاق بن راهويه،والبزار فى مسانيدهم ورواه ابن عدى فى الكامل (٦/٣٣٥) والحاكم فى المستدرك والدارقطنى فى سننه (٣/٧١) رقم ٢٦٩)_



پور وي.او ددې وجه داده.چه لفظ د سلم او سلف، په اسلام او اسلاف كې لغة د تعجيل معنى موجود ده.او چونكه په شرعي احكامو كې د لغوى معنى رعايت كولې شي.په دې وجه د لفظ سلم او اسلام لفظي معنى متحقق كاوه لپاره په احدالعوضين باندې قبضه كول ضروري دي.او چونكه داخبره منلې شوې ده.چه مسلم فيه ميعادي او پور وي.په دې وجه دوهم عوض يعنى په راس المال باندې به په مجلس د عقدكې قبضه كول ضروري وي.

وَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَسْلِيمِ رَأْسِ الْمَالِ لِيَتَقَلَّبَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ فِيهِ او ځكه چې د راس المال سپارل ضروري دي چې مسلم اليه په دې كې تصرف اوكړي فَيَقْدِرُ عَلَى التَّسْلِيمِ اود مسلم فيه په سپارلو باندې قادر شي وَلِهٰذَا قُلْنَا اوهم په دې وجه موږ اووئيل لَا يَصِحُّ السَّلَمُ چې عقدسلم نه صحيح كيږي إِذَا كَانَ فِيهِ خِيَارُ الشَّرْطِ لَهُمَا أَوْ لِأَحَدِهِمَا كله چې په دې كې رب السلم او مسلم اليه دواړو لپاره ياد يو لپاره خيار شرط وي لِأَنَّهُ يَمْنَعُ تَمَامَ الْقَبْضِ ځكه چې خيارشرط د قبضه پوره كيدلو نه مانع دي لِكَوْنِهِ مَانِعًا مِنَ الِانْعِقَادِ فِي حَقِّ الْحُكْمِ ځكه چې خيارشرط د حكم د انعقاد نه مانع دي وَكَذَا لَا يَثْبُتُ فِيهِ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ اوهم دغه ډول په عقدسلم كې خيار رؤيت نه ثابتيږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُفِيدٍ په دې وجه چې دا غيرمفيد دي.

حل اللغة: ① تسليم-سپارل-② ينقلب-ګرځي-③ تمام-پوره-④ الخيار-اختيار

تشريح:- د دوهم دليل نه وړاندې دوې (دوه) خبرې په ذهن كې كينوئ.يوه خودا چې بيع سلم د مسلم اليه د غريب والى په وجه مشروع شوې دې.او دويمه داچه د سلم د جواز لپاره د مسلم اليه په مسلم فيه باندې قادر كيدل ضروري دي.نو ددې دواړو خبرونه ښكاره شوه.چه د مسلم اليه په مجلس عقدكې په راس المال باندې قبضه كول ضروري دي.چه مسلم اليه په راس المال كې تصرف اوكړي.اود مسلم فيه په سپارلو قادر شي.چونكه په مجلس عقد كې په راس المال باندې قبضه كول ضروري دي.په دې وجه موږ وايو.كه په عقدسلم كې د رب السلم او مسلم اليه دواړو لپاره ياد يو لپاره خيارشرط د قبضه پوره كيدلو نه په دې وجه مانع دې.چه د خيارشرط په وجه د عقدكوم حكم دې.( يعنى ملك) دا نه ثابتيږي.ترڅو كه په بيع كې د دواړو خيار وي.نود مشتري ملكيت په مبيع كې اود بائع ملكيت په ثمن كې نه ثابتيږي.نو هركله چې د خيارشرط په موجودګئ كې مسلم اليه د راس المال نه مالك كيږي.نو په راس المال به دده قبضه هم پوره نه وي.او هركله چې په راس المال باندې د مسلم اليه پوره قبضه اونشوه.نودې به په دې هم قادر نه وي.چه په دې كې تصرف اوكړي.او مسلم فيه اوسپاري.حالانكه په مسلم فيه سپارلو باندې قادر كيدل ضروري دي.دغه ډول په عقدسلم كې خيار رؤيت نه ثابتيږي.ځكه چې خيار رؤيت مفيد نه دې.او مفيد ځكه نه دې.چه د خيار رؤيت فائده داده.چه مشتري مبيع اوګوري.بيع فسخ كړي.او په بيع سلم كې مسلم فيه د مسلم اليه په ذمه دين وي.نو هركله چې مسلم اليه، مسلم فيه رب السلم ته اوسپارلو.او رب السلم د خيار رؤيت لاندې دا واپس كړلو.نو مسلم فيه د مسلم اليه په ذمه بيا ثابت شو.اوس كه مسلم اليه دوباره مسلم فيه اوسپارلو.نود رب السلم لپاره به په دې كې هم خيار رؤيت ثابت وي.نو كه د خيار رؤيت لاندې نې دا هم مسلم اليه ارخ ته واپس كړلو.نود مسلم اليه په ذمه كې به بيا ثابت شي.اوس كه په دريم ځلى مسلم اليه رب السلم مسلم فيه اداكړلو.نوده ته به په دې كې هم خيار رؤيت حاصل وي.اوس كه د خيار رؤيت لاندې نې داهم واپس كړلو.نو مسلم فيه به بيا د مسلم اليه په ذمه ثابت شي.بهرحال غيرمتناهي ( لامحدود) طريقه باندې رب السلم چې كوم مسلم فيه هم اخلى.په هغې كې به دده لپاره خيار رؤيت ثابت وي.اود خيار رؤيت لاندې د واپس كاوه په وجه به ددې په مثل كې دده حق ثابتيږي.دغه ډول به عقدسلم كله هم نه فسخ كيږي.بلكه تر قيامته به دا سلسله روانه وي.او كله چې د خيار رؤيت په وجه عقدسلم نه فسخ كيږي.نود خيار رؤيت به څه فائده هم نه ښكاره كيږي.ځكه چې دخيار رؤيت فائده هم داده.چه،،من له الخيار،، مبيع اوګوري.او بيع فسخ كړي.اوچه د خيار رؤيت څه فائده نه وي.نو په عقدسلم كې به خيار رؤيت نه ثابتيږي.

بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خيارعيب لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ تَمَامَ الْقَبْضِ چې هغه د قبضه پوره كيدلو نه مانع دي وَلَوْ أَسْقَطَ خِيَارَ الشَّرْطِ قَبْلَ الِافْتِرَاقِ اوكه د جلا كيدلو نه وړاندې نې خيارشرط ساقط كړو وَرَأْسُ الْمَالِ قَائِمٌ او راس المال موجود دي. جَازَ نو عقد به جائز وي خِلَافًا لِزُفَرَ رحمه الله د امام زفر رحمه الله اختلاف وَقَدْ مَرَّ نَظِيرُهُ او ددې مثال وړاندې تير شوې دي.

تشریح:- په دې عبارت کې علامه مرغیناني ﷫ فرمائي، چه په عقدسلم کې خیارعیب ثابتیږي. یعنی رب السلم ته په مسلم فیه کې خیارعیب حاصل دی. ځکه چې خیارعیب د قبضه پوره کیدلو نه مانع نه وي. او خیار عیب د قبضه پوره کیدلو نه مانع ځکه نه وي، چه د قبضه پوره کیدل متعلق دي. د صفقه پوره کیدلو سره. او د صفقه پوره کیدل موقوف دي. د عاقدینو رضامندۍ پوره کیدلو باندې، او د عقدسلم په وخت رضامندي موجود ده. نو صفقه پوره کیدل تام وي. او هر کله چې صفقه تام ده. نو قبضه به هم تام وي. او هر کله چې د مسلم الیه په راس المال باندې قبضه تام شوه. نو د خیارعیب حاصلیدلو باوجود به عقدسلم صحیح وي.

؟ علامه مرغیناني ﷫ فرمائي، وړاندې تیرشوي دي. چه د خیارشرط سره عقدسلم صحیح نه وي. خو که په عقدسلم کې په عاقدین کې د یو لپاره خیارشرط وي. او بیا د مجلس نه د جداکیدلو نه وړاندې ده خیار ساقط کړلو. او راس المال د مسلم الیه سره موجود دي. نو زموږ په نیز دا عقدسلم صحیح دي. او که راس المال د مسلم الیه سره ضائع شو. یا ده خرڅ کړلو. نو بالاجماع به دا عقد صحیح نه وي. حضرت امام زفر، امام شافعي او امام مالك ﷭ فرمائي. چه د راس المال موجود کیدلو په صورت کې هم که خیار ساقط کړې شو. نو عقدسلم به صحیح نه وي. او د دې مثال سره د دلیل نه د، ،باب البیع الفاسد ، ،لاندې تیرشوې دي. یعنی که یو کس په مجهول میعاد باندې پور واخستلو. بیا د میعاد نه وړاندې ذکرشوې موده ساقط کړې شوه. نو زموږ په نیز به عقدجائز وي. په دې شرط چې مبیع د مشتري سره موجود وي. او د امام زفر، امام شافعي او د امام مالك ﷭ په نیز عقدجائز نه دې. هم دا اختلاف په عقدسلم کې دې.

### د بیع سلم د شرائطو خلاصه

وَجُمْلَةُ الشُّرُوطِ جَمَعُوْهَا فِي قَوْلِهِمْ او د بیع سلم واړه شرطونه مشائخو ﷭ پخپل دې قول کې جمع کړي دي إِعْلَامُ رَأْسِ الْمَالِ د راس المال نه خبرول وَتَعْجِيلُهُ او راس المال في الحال ورکول وَإِعْلَامُ الْمُسْلَمِ فِيهِ او د مسلم فیه نه خبرول وَتَأْجِيلُهُ او د مسلم فیه ادا کاوه لپاره میعاد مقررول وَبَيَانُ مَكَانِ الْإِيفَاءِ او د مسلم فیه ادا کاوه مقام بیانول وَالْقُدْرَةُ عَلَى تَحْصِيلِهِ او د مسلم فیه په سپارلو باندې قادر کیدل.

حل اللغة: ① اعلام-خبرورکول-② الایفاء-ادا کول-③ کر-خلویښت قفیزه-④ الفوات-فوت کیدل

تشریح:- مصنف ﷫ فرمائي، چه مشائخو د بیع سلم واړه شرطونه د اختصار په لحاظ سره پخپل دې قول کې جمع کړي دي. ﴿وإعلام رأس المال﴾ یعنی د راس المال جنس، صفت، نوع او وزناً یا کیلاً یا عدداً مقدار بیان کړي. ﴿وتعجیله﴾ یعنی راس المال في الحال د مجلس نه د جداکیدلو نه وړاندې اداکړي. ﴿وإعلام المسلم فیه﴾ یعنی د مسلم فیه جنس، نوع، صفت، او حسب ارتیا مقدار بیان کړي. ﴿وتأجیله﴾ یعنی د مسلم فیه ادا کاوه لپاره معلوم میعاد مقرر کړي. ﴿وبیان مکان الإیفاء﴾ یعنی که ارتیا وي. نو د مسلم فیه ادا کاوه مکان بیان کړي. ﴿والقدرة علی تحصیله﴾ یعنی مسلم الیه ته د مسلم فیه حاصلولو قدرت وي. یعنی د عقد د وخت نه واخله د ادا کاوه د وخت پورې د بازار نه منقطع نه وي. بلکه په بازار کې ملاویږي.

### د راس المال څه برخه مقبوض او څه برخه پور کېږي د بیع سلم حکم

فَإِنْ أَسْلَمَ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فِي كُرِّ حِنْطَةٍ نو که په دوې (دوه) سوه درهمو ئې په یو کړ غنمو کې عقدسلم او کړو مِائَةٌ مِنْهَا دَيْنٌ عَلَى الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ په دې کې سل درهم د مسلم الیه په ذمه دین دې وَمِائَةٌ نَقْدٌ او سل درهم ئې نغد اداکړل فَالسَّلَمُ فِي حِصَّةِ الدَّيْنِ بَاطِلٌ نو د دین په برخه کې بیع سلم باطل دې فَوَاتِ الْقَبْضِ ځکه چې قبضه فوت شوې ده وَيَجُوزُ فِي حِصَّةِ النَّقْدِ او د نغدو په برخه کې جائز ده لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِهِ ځکه چې د بیع واړه شرطونه جمع شوي دي.

تشریح:- یو کړ د شپیتو قفیزو وي. او یو قفیز د اتو مکاکیکو وي. او یو مکوك د یونیم صاع وي. او په جامع صغیر کې ونیلی شوي دي. چه یو کړ د څلویښت قفیزو وي. صورت د مسئلې دادې. چه یو سړي په یو کړ غنمو کې د دوې



(دوه) سوه درهمو عقدسلم اوکړلو په دې کې سل روپۍ په مسلم الیه باندې پور دی. او سل درهم ئې نغد اداکړل. نو برخه دین یعنی د سل درهمو بیع سلم به باطل وي. او برخه نغد یعنی د سل درهمو بیع سلم به صحیح وي. که دا دوې (دوه) سوه درهم ئې مطلق بیان کړې وي. یا سل درهمه دین او سل درهم ئې نغد اړخ ته منسوب کړې وي.

؟ دلیل دادې. چه په مجلس عقد کې راس المال باندې د مسلم الیه قبضه کول ضروري دي. حالانکه برخه دین یعنی په سل درهمو باندې د مسلم الیه قبضه په مجلس کې اونه موندې شوه. ځکه به د برخه دین بیع سلم جائز نه وي. او هغه سل درهم کوم چې په مجلس کې اداکړې شو په دې کې چونکه د بیع سلم واړه شرطونه موجود دي. په دې وجه به د دې برخې (حصې) بیع سلم جائز وي.

وَهٰذَا لِأَنَّ الدَّيْنَ لَا يَتَعَيَّنُ فِي الْبَيْعِ او دا ځکه چې په بیع کې دین نه متعین کیږي أَلَا تَرَى أَنَّهُمَا لَوْ تَبَايَعَا عَيْنًا بِدَيْنٍ آیا نه ګورې که دواړو مال عین د دین په عوض خرڅ کړو ثُمَّ تَصَادَقَا بیا دواړو اتفاق اوکړو أَنْ لَا دَيْنَ چې هیڅ دین نه وو لَا يَبْطُلُ الْبَيْعُ نو بیع به باطل نه وي فَيَنْعَقِدُ صَحِيحًا او صحیح به منعقد وي.

تشریح:- داعبارت د امام زفر ﷫ د قول ځواب دې. امام زفر ﷫ فرمائیلي دي. چه هر کله برخه دین یعنی د سل درهمو بیع سلم فاسد ده. نو د برخه نغد بیع سلم به هم فاسد وي. ځکه چې د عقدواحد په وجه فساد په ټولو کې پرخپاره شوې (خور شوې) دې. خو زموږ د اړخه ددې ځواب دادې. چه د برخه دین په بیع سلم کې چې کوم فساد دې هغه طاري (پیدا شوې) دي. او فساد طاري (کوم چې روسته پیدا شوې وي) د مفسد په اندازه وي. او مفسد (په مجلس کې په راس المال باندې قبضه کول) صرف په برخه دین کې اوموندې شو. په برخه نغد کې نه دې موندې شوې. په دې وجه صرف د برخه دین د بیع سلم فساد ولې طاري دې؟ نو ددې جواب دادې. چه ابتداء په یو کړ غنمو کې د دوې (دوه) سوه درهمو بیع سلم صحیح واقع شوې ده. ځکه که عقدسلم مطلقاً دوې (دوه) سوه درهمو اړخ ته منسوب شوې ده. مثلاً داسې ئې ونیلی وي. چه ما تا سره په یو کړ غنمو کې د دوې (دوه) سوه درهمو عقدسلم اوکړلو. بیا ئې سل درهمه نغد اداکړل. او سل درهمه هغه دي. کوم چې زما په تا پور دي. نو په دې صورت کې ابتداء د عقدسلم صحیح کیدل ښکاره دي. او که عقدسلم دین او عین دواړو اړخ ته منسوب کړې شو. مثلاً داسې ئې اوونیل. چه ما سل درهمه کوم چې زما په تا باندې پور دي. د هغې او ددې کومې چې مخې ته موجود دي. په یو کړ غنمو کې عقدسلم اوکړلو. نو بیا به هم عقدسلم ابتداء صحیح وي. هم دا وجه ده. که رب السلم دین او عین پوره راس المال د مجلس نه د جلا کیدلو نه وړاندې ادا کړلو. نو پوره عقدسلم به صحیح وي. خو که په راس المال باندې د قبضه کاوه نه بغیر دواړه د مجلس نه جلا شو. نو بیع سلم به هم د هغه دلیل په وجه باطل وي. کوم دلیل چې وړاندې تیرشوې دي. یعنی راس المال په مجلس د عقد کې د نه ادا کاوه په صورت کې د پور په عوض د پور بیع لازمیږي. حالانکه د الله رسول ﷺ ددې نه منع فرمائیلې ده.

وَلَا يَشِيعُ الْفَسَادُ لِأَنَّ الْفَسَادَ طَارِئٌ او فساد به نه خوریږي ځکه چې فساد پیدا شوې دې إِذِ السَّلَمُ وَقَعَ صَحِيحًا ځکه چې عقدسلم صحیح واقع شوې دې وَلِهٰذَا لَوْ نَقَدَ رَأْسَ الْمَالِ قَبْلَ الِافْتِرَاقِ او هم په دې وجه که راس المال ئې د جدایۍ نه وړاندې اداکړو صَحَّ نو عقدسلم به صحیح وي إِلَّا أَنَّهُ يَبْطُلُ بِالِافْتِرَاقِ خو دا به د جدایۍ په وجه باطل وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو.

حل اللغة: ① یشیع-خوریږي-② طارئ-پیدا کیږي-③ الافتراق-جدا کیدل-④ یبطل-باطلیږي

تشریح:- پاتې شوه دا خبره چې سل درهمه دین او سل درهمه عین او نغد په صورت کې بیع سلم په ابتداء کې څنګه صحیح کیدلې شي؟ نو ددې په ځواب کې علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. چه په بیع کې د دین متعین کاوه باوجود نه متعین کیږي. یعنی که په بیع کې په بائع باندې واجب شوې قرضه د ثمن کیدلو لپاره متعین کړي. نو دا به متعین نه وي. بلکه عام قاعده ده. چه په عقود کې نقود هغه وخت نه متعین کیږي. چه کله نقود عین او مشارالیه وي. نو هم دغه شان چې کله دین وي. بیا به هم په متعین کاوه سره نه متعین کیږي. که یو کس د خپل هغه پور په عوض (کوم چې په بائع باندې دې) دده نه یو غلام واخستلو. بیا دواړو اتفاق اوکړلو. چه د مشتري په بائع باندې هیڅ قرضه

نشته.نو بیع به باطل نه وی.ددې نه معلومیږی.چه د دین په عوض بیع ابتداء صحیح کیږی.ګنی د دین په نه کیدلو باندې په اتفاق کولو سره به بیع نه صحیح کیدله.البته که بائع او مشتری دواړو ته د پور نه کیدل پوره طور باندې معلوم نه وی.خوبیا مشتری د دین په عوض غلام واخستلو.نودا بیع به باطل وی.ځکه چې په دې صورت کې دې دواړو سره د پوهې د ثمن نه بغیر بیع منعقد کړې ده.اود ثمن نه بغیر د ابتداء نه باطل وی.او هر کله چې بیع په ابتداء کې باطل شوه.نوپه دین نه کیدلو باندې اتفاق کاوه نه روسته به هم صحیح نه وی.

بهرحال هر کله چې نقود یعنی دراهم او دنانیر د متعین کاوه باوجود نه متعین کیږی.نودا مطلق ذکر کول.او یا په دین او عین سره مقید کول دواړه برابر دی.او وړاندې تیر شوی دی.چه راس المال یعنی دوې (دوه) سوه درهم دمطلق ساتلو په صورت کې بیع سلم ابتداء صحیح منعقد کیږی.نوهم دغه ډول په دین سره د مقید کاوه په صورت کې هم بیع سلم ابتداء صحیح کیږی.صرف دومره لازمیږی.چه د رب السلم او مسلم الیه دجدا کیدلو نه وړاندې مسلم الیه په دوې (دوه) سوه درهم باندې قبضه اوکړی.چه د پور په عوض د پور بیع لازم رانشی.خوچه کله رب السلم سل درهم نغد اداکړل.او سل درهم ئې ورنکړل.نو په سل درهمه پور کې د قبضه شرط فوت کیدلو په وجه به ددې د برخې (حصې) سلم باطل شی.اود سل درهمه نغدحصه سلم به صحیح وی.اوچونکه دا فساد طاری (روسته پیدا شوې) دې.ځکه به پوره عقدسلم نه باطلیږی.

## په راس المال اومسلم فیه کښې قبل القبض د تصرف حکم

قَالَ فرمایي وَلَايَجُوزُ التَّصَرُّفُ فِي رَأْسِ مَالِ السَّلَمِ وَالْمُسْلَمِ فِيهِ قَبْلَ الْقَبْضِ اود قبضه نه وړاندې د سلم په راس المال اوپه مسلم فیه کې تصرف کول جائز نه دي.

**تشریح:-** ابو الحسین قدوری ﷫ فرمائی.چه د بیع سلم په راس المال کې د قبضه کاوه نه وړاندې د مسلم الیه لپاره تصرف کول جائز نه دی.دغه ډول په مسلم فیه کې د قبضه نه وړاندې د رب السلم لپاره تصرف کول جائز نه دی.مثلاً خالد د حامد نه په دوې (دوه) سوه درهم باندې د دوې (دوه) منه غنمو بیع سلم اوکړله.او په دې عقد کې خالد رب السلم اوحامد مسلم الیه دی.بیا حامد (مسلم الیه) ددې دوې (دوه) سوه درهمو په عوض کې د شاهد نه اس واخستلو.حالانکه تراوسه پورې حامد په دې دوې (دوه) سوه درهمو باندې قبضه نه ده کړې.نود حامد یعنی مسلم الیه دا تصرف به صحیح نه وی.دغه ډول که خالد یعنی رب السلم په دوې (دوه) منه غنمو یعنی په مسلم فیه باندې د قبضه کاوه نه بغیر دا خرخ کړل.نوبیا هم جائز نه دی.حاصل داچه د قبضه نه وړاندې نه په راس المال کې تصرف کول جائز دی.او نه په مسلم فیه کې تصرف جائز دی.

أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِمَا فِيهِ مِنْ تَفْوِيتِ الْقَبْضِ اول خو ځکه چې په دې کې د هغه قبضې فوت کول (لازم) دی الْمُسْتَحَقِّ بِالْعَقْدِ کومه قبضه چې د عقد په وجه واجب شوې ده وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ مَبِيعٌ او دوهم ځکه چې مسلم فیه مبیع وی وَالتَّصَرُّفُ فِي الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يَجُوزُ اوپه مبیع کې د قبضه نه وړاندې تصرف کول جائز نه دي.

**تشریح:-** د اول دلیل دادې.چه په مجلس کې راس المال باندې قبضه کول د بیع سلم صحیح کیدلو شرط اود الله تعالی حق دې.او تصرف کول دا باطلوی.په دې وجه د قبضه نه وړاندې په راس المال کې تصرف کاوه ته جائز ونیلی شوی دی.

د دوهم دلیل دادې.چه مسلم فیه مبیع وی.اود قبضه نه وړاندې په مبیع کې تصرف کول جائز نه دی.په دې وجه د قبضه کاوه نه وړاندې د مسلم الیه لپاره په مسلم فیه کې تصرف کول ناجائز دی.

## په مسلم فیه کښې قبل القبض د شرکت او تولیه حکم

وَلَا تَجُوزُ الشَّرِكَةُ وَالتَّوْلِيَةُ فِي الْمُسْلَمِ فِيهِ او په مسلم فیه کې شرکت او تولیه جائز نه ده لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِيهِ ځکه چې دا په مسلم فیه کې (د قبضه نه وړاندې تصرف دې.



**تشریح:- مسئله:** د قبضه نه وړاندې په مسلم فیه کې نه شرکت جائز دې.او نه تولیه جائز ده.د شرکت صورت دادې.چه رب السلم یو کس ته اووئیل.ته ماته نیم راس المال راکړه.چه ته په مسلم فیه کې زما سره برابر شریك شې.اود تولیه صورت دادې.چه رب السلم یو بل کس ته اووئیل.که ته ماته پوره راس المال راکړې.نو پوره مسلم فیه ستا لپاره دې.د شرکت او تولیې د عدم جواز دلیل دادې.چه د شرکت په صورت کې په نصف مسلم فیه کې ،اود تولیه په صورت کې په پوره مسلم فیه کې د قبضه نه وړاندې تصرف کول لازمیږی.او وړاندې تیر شوی دی.چه د قبضه نه وړاندې په مسلم فیه کې تصرف کول ناجائز دی.په دې وجه په مسلم فیه کې نه شرکت جائز دې.او نه تولیه جائز ده.

## د بیع السلم د اقالې حکم

فَإِنْ تَقَايَلَا السَّلَمَ بیا که دواړو د سلم اقاله اوکړله لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ مِنَ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ بِرَأْسِ الْمَالِ شَيْئًا نو رب السلم ته دا اختیار نشته.چه د راس المال په عوض دمسلم الیه نه څه شی واخلی حَتَّى يَقْبِضَهُ كُلَّهُ تردې چې په پوره راس المال باندې قبضه اوکړی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی لَا تَأْخُذْ إِلَّا سَلَمَكَ أَوْ رَأْسَ مَالِكَ (۱) چه مه اخلې مګر خپل سلم یا خپل راس المال أَيْ عِنْدَ الْفَسْخِ یعنی د عقدسلم په فسخ کیدلو باندې.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که رب السلم او مسلم فیه د بیع سلم اقاله اوکړله.نو رب السلم ته دا اختیار نشته.چه دې په راس المال باندې د قبضه کاوه نه وړاندې ددې په عوض مسلم الیه نه څه شی واخلی.البته چې کله په پوره راس المال باندې قبضه اوکړی.نوده ته اختیار دې.چه څه غواړی.واخلی.او دچا نه ئې چې غواړی.واخلی.

دلیل د رسول الله ﷺ قول دې. ﴿لاتأخذ إلا سلمك او رأس مالك﴾ یعنی،، مه اخله.مګر مسلم فیه یا راس المال،،یعنی که بیع سلم پاته دې.نو رب السلم به د مسلم الیه نه مسلم فیه وصول کوی.اوکه بیع سلم فسخ شو.نو رب السلم به دمسلم الیه نه خپل ورکړې شوې راس المال وصوله وی.ددې نه علاوه هیڅ مبادله نشی کولې.د دارقطنی د حدیث الفاظ دادی. ﴿فلا یأخذ إلا ما أسلم فیه أو رأس ماله﴾ یعنی،،نه دې اخلی مګر هغه شی.په کوم کې ئې چې عقدسلم کړې دې.یا خپل راس المال،،حاصل داچه رب السلم د بقاء عقد په صورت کې مسلم فیه وصولولې شی.اود فسخ په صورت کې راس المال وصولولې شی.ددې په بدل کې به د بل هیڅ شی اخستلو اختیار نه وی.

وَلِأَنَّهُ أَخَذَ شَبَهًا بِالْمَبِيعِ او ځکه چې راس المال د مبیع سره مشابهت اختیار کړې دې فَلَا يَحِلُّ التَّصَرُّفُ فِيهِ قَبْلَ قَبْضِهِ په دې وجه د قبضه نه وړاندې به په دې کې تصرف حلال نه وی وَهَذَا لِأَنَّ الْإِقَالَةَ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ، اودا ځکه چې اقاله د دریم په حق کې بیع جدید وی وَلَا يُمْكِنُ جَعْلُ الْمُسْلَمِ فِيهِ مَبِيعًا او مسلم فیه مبیع ګرځول لِسُقُوطِهِ فَجُعِلَ رَأْسُ الْمَالِ مَبِيعًا لِأَنَّهُ دَيْنٌ مِثْلُهُ ځکه ممکن نه دی.چه هغه ساقط دې.

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه د اقاله په صورت کې راس المال د مبیع مشابه شوې دې.ځکه چې اقاله د عاقدین نه علاوه د دریم کس په حق کې بیع جدید وی.اود بیع لپاره معقودعلیه (مبیع) موجود کیدل ضروری دی.او مسلم فیه چونکه داقاله په وجه د مسلم الیه د ذمه نه ساقط شوې دې.په دې وجه مسلم فیه معقودعلیه نشی کیدلې.او هر کله چې مسلم فیه معقودعلیه نشی کیدلې.نو راس المال معقودعلیه یعنی مبیع ګرځول ضروری دی.چه په دې باندې عقد وارد کړې شی.ګنی کوم چې مورږ مبیع فرض کړې دې.هغه به مبیع نه وی.حالانکه اقاله د دریم کس په حق کې بیع نه کیدل باطل دی.او راس المال د مبیع جوړیدلو صلاحیت هم لری.ځکه چې راس المال د مسلم فیه پشان دین وی.او دین مبیع جوړول محال نه دی.نو ثابته شوه.چه راس المال د مبیع مشابه دې.او وړاندې تیر شوی دی.چه د قبضه کاوه نه وړاندې په مبیع کې تصرف کول جائز نه دی.نو هر کله چې د قبضه کولو نه وړاندې په مبیع کې تصرف کول جائز نه دی.نو کوم چې ددې مشابه دې.یعنی راس المال،نو په دې کې به هم د قبضه کاوه نه

(۱) من حدیث أبی سعید الخدری ﷺ أخرجه أبوداود فی البیوع باب ۵۷ رقم ۳۴۶۸ وابن ماجه فی التجارات باب ۶۰ رقم ۲۲۸۳ )_

وړاندې تصرف کول جائز نه وي.او هر کله چې د اقاله په صورت کې د قبضه نه وړاندې په راس المال کې د تصرف اجازت نشته.نو د اقاله نه روسته به رب السلم ته د مسلم اليه نه د راس المال په عوض د څه اخستلو اختيار هم نه وي.

إلاّ أنّه لا يجبُ قبضُه في المجلس نو په راس المال باندې قبضه کول واجب نه دي لِأنّه ليس في حُكمِ الابتداء من كلِّ وَجْهٍ ځکه چې دا من کل وجه د ابتدائي عقد په حکم کې نه دي.

**تشريح:-** دا عبارت د يو سوال ځواب دی.سوال دادې.چه هر کله اقاله د عاقدين نه علاوه د دريم کس په حق کې بيع جديد ده.نو د بيع سلم اقاله به د دريم کس په حق کې بيع سلم وي.او په بيع سلم کې د بيع په مجلس کې راس المال باندې قبضه کول شرط دی.نو د اقاله نه روسته هم په مجلس اقاله کې په راس المال باندې قبضه شرط کيدل پکار وو.حالانکه د اقاله نه روسته په مجلس اقاله کې په راس المال باندې قبضه کول شرط نه دي؟

ځواب°ددې ځواب دادې.چه اقاله من کل وجه د ابتدائي بيع په حکم کې نه ده.ځکه چې ابتدائي بيع د ټولو خلګو په حق کې بيع وي.او اقاله د عاقدين نه علاوه د دريم کس په حق کې بيع وي.او کوم عقد چه په ابتداء کې بيع وي.او د ټولو خلګو په حق کې بيع سلم ده.په دې کې په راس المال باندې د قبضه شرط لګولو سره دا نه لازميږي.چه په عقد سلم کې هم قبضه شرط وي.کوم چې انتهاء بيع سلم ده.او د عاقدين نه علاوه د دريم سړي په حق کې بيع سلم ده.او وجه داده.چه د بيع سلم په ابتداء کې راس المال باندې د قبضه شرط د پور په عوض د پور بيع نه د بچکيدلو لپاره وو.او د اقاله په وجه چونکه مسلم فيه د مسلم اليه د ذمه نه ساقط شوې دی.په دې وجه که په مجلس اقاله کې راس المال باندې قبضه اونکړې شوه.نو د پور په عوض به د پور بيع نه لازميږي.او هر کله چې د پور په عوض د پور بيع لازم نشوه.نو په دې صورت کې به قبضه هم شرط نه وي.

وَفِيهِ خِلافُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللّهُ او په دې کې د امام زفر ﷫ اختلاف دی وَالحُجَّةُ عَلَيهِ مَا ذَكَرنَاهُ او ددوی خلاف حجت هغه دی.کوم چې موږ ذکر کړې دي.

**تشريح:-** دلته علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه په اصل مسئله کې د امام زفر او امام شافعي ﷫ اختلاف دی.حضرت امام زفر او امام شافعي ﷫ فرمائي.چه د اقاله نه روسته رب السلم په راس المال باندې د قبضه کاوه نه بغير که د مسلم اليه نه ددې په عوض څه اخستل اوغواړي.نو اخستلې شي.ځکه چې د اقاله نه روسته راس المال د مسلم اليه په ذمه دَين شوی دی.نو لکه څنګه چې د نورو ديونو په عوض اخستل جائز دي.دغه ډول د راس المال په عوض به هم اخستل جائز وي.خو د امام زفر او امام شافعي ﷫ خلاف به هغه حديث او عقلي دليل حجت وي.کوم چې موږ د خپل مذهب په تائيد کې پيش کړې دی.يعنی «لاتأخذ إلاسلمك.....الحديث، او، ولأنه أخذشبهاً بالمبيع..» د مسلم اليه په حکم د دريم کس نه د رب السلم «مسلم فيه» قبضه کولو حکم

قَالَ فرمايي وَمَنْ أَسْلَمَ فِي كُرِّ حِنطَةٍ که يو سړی په يو کُر غنمو کې بيع سلم اوکړو فَلَمَّا حَلَّ بيا کله چې د مسلم فيه ادا کاوه ميعاد راغی الأَجَلُ اشْتَرَى المُسْلَمُ إلَيْهِ مِنْ رَجُلٍ كُرًّا نو مسلم اليه يو سړي نه يو کُر غنم واخستل وَأَمَرَ رَبَّ السَّلَمِ بِقَبْضِهِ قَضَاءً او رب السلم ته ئې د خپل حق په اداکولو کې په دې باندې د قبضه حکم ورکړو لَمْ يَكُنْ قَضَاءً نو دا به دده حق اداکول نه وي وَإِنْ أَمَرَهُ أَنْ يَقْبِضَهُ لَهُ او که ده ته ئې حکم ورکړو.چه د مسلم اليه لپاره قبضه اوکړه ثُمَّ يَقْبِضَهُ لِنَفْسِهِ بيا ئې د خپل ځان لپاره قبضه کړه فَاكْتَالَهُ نو رب السلم دا د مسلم اليه لپاره پيمانه کړل ثُمَّ اكْتَالَهُ لِنَفْسِهِ بيائې دا دخپل ځان لپاره پيمانه کړل جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ اجْتَمَعَتِ الصَّفْقَتَانِ بِشَرْطِ الكَيْلِ چې دوې (دوه) صفقې بشرط الكيل جمع شوې فَلَا بُدَّ مِنَ الكَيْلِ مَرَّتَيْنِ ځکه.نو دوې (دوه) ځل کيل کول به ضروري وي لِنَهْيِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ بَيْعِ الطَّعَامِ ځکه چې نبی کريم ﷺ د غلې اخستلو خرڅولو نه منع فرمائيلې ده حَتَّى يَجْرِيَ فِيهِ صَاعَانِ



(¹) ترڅو چې په دې کې دوې (دوه) صاع جاری شي وَهَذَا هُوَ مَحْمَلُ الحَدِيثِ عَلَى مَا مَرَّ او هم دا د حديث محمل دی.لکه څنګه چې وړاندې تيرشو.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.که يو کس د بل کس سره په يو کُر غنمو کې عقد سلم اوکړلو.بيا چې کله د مسلم فيه ادا کاوه ميعاد پوره شو.نو مسلم اليه د يو کس نه يو کُر غنم واخستل.او رب السلم ته ئې حکم اوکړلو چه د خپل حق وصولولو لپاره په دې باندې قبضه اوکړي.نو رب السلم د مسلم اليه د حکم مطابق قبضه اوکړله.نو په دې سره به د رب السلم حق نه وصوليږي.نو که مقبوض غنم د رب السلم په قبضه کې هلاک شو.نو دا به د مسلم اليه د مال نه هلاک وي.او رب السلم ته به د خپل حق وصولولو د مطالبې اختيار حاصل وي.که مسلم اليه رب السلم ته دا حکم اوکړو.چه مخکې دې دمسلم اليه د اړخه وکيل جوړشي.او قبضه اوکړي.بيا د خپل حق وصولولو لپاره قبضه اوکړي.نو رب السلم د مسلم اليه دحکم مطابق دا د مسلم اليه لپاره کيل کړل.او بيا ئې خپل ځان لپاره کيل کړل.نو دا جائز دی.يعنی ددې څخه به د رب السلم حق وصول شي.او د مسلم اليه حق به اداشي.

دليل دادې.چه دلته د کيل شرط سره دوې (دوه) صفقې جمع شوې.يوه صفقه د مسلم اليه او دده د بائع په مينځ کې.او دويمه صفقه دمسلم اليه او د رب السلم په مينځ کې.او هر کله چې بشرط الکيل دوې (دوه) صفقې جمع شوې.نو دوې (دوه) ځله به کيل کول ضروري وي.يو ځل به دمسلم اليه د خپل بائع نه د اخستلو په وجه کيل کول ضروري وي.او يو ځل به د مسلم اليه د رب السلم خرڅولو په وجه کيل کول ضروري وي.او بشرط الکيل دوې (دوه) صفقې جمع کيدلو په صورت کې دوې (دوه) ځله کيل کول ځکه ضروري دی.چه هادی عالم ﷺ د غلې د بيع نه منع فرمائيلې ده.ترڅو چې په دې کې دوې (دوه) صاعه جاری شي.يو صاع د بائع او دوهم صاع د مشتری.يعنی هر کله چې بائع د خپل ځان لپاره اخستې دی.نو دا دې ناپ کړي.او کله ئې چې په بل باندې خرڅ کړي.نو په دوهم ځل به ئې ناپ کوي.ددې حديث هم دا محمل دی.لکه څنګه چې د ،،باب المرابحة والتوليه،، سره متصل فصل کې ذکرشوی دی.

وَالسَّلَمُ وَإِنْ كَانَ سَابِقًا لَكِنْ قَبْضُ المُسْلَمِ فِيهِ لَاحِقٌ او سلم اګرچه وړاندې وو.خو په مسلم فيه باندې قبضه روسته ده.وَأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ ابْتِدَاءِ البَيْعِ او په مسلم فيه باندې قبضه د بيع د ابتداء په مرتبه کې ده.لِأَنَّ العَيْنَ غَيْرُ الدَّيْنِ حَقِيقَةً ځکه چې عين په حقيقت کې د دين خلاف دی وَإِنْ جُعِلَ عَيْنُهُ فِي حَقِّ حُكْمٍ خَاصٍّ وَهُوَ حُرْمَةُ الاسْتِبْدَالِ اګرچه يو خاص حکم يعنی د استبدال حراميدلو کې مال عين (مقبوض) عين دين ګرځولې شوې دی فَيَتَحَقَّقُ البَيْعُ بَعْدَ الشِّرَاءِ نو د اخستلو نه روسته خرڅول متحقق کيږي.

**تشريح:-** دا عبارت د يو سوال مقدر ځواب دی.سوال دادې.چه د مسلم اليه،رب السلم خرڅول ډير وړاندې دی.او د مسلم اليه د خپل بائع نه اخستل ډير روسته دی.نو د مسلم اليه خپل بائع نه د اخستلو نه روسته به د رب السلم خرڅونکې نه وي.او هر کله چې مسلم اليه د اخستلو نه روسته د رب السلم خرڅونکې نشو.نو دوې (دوه) صفقې هم جمع نشوې.او هر کله چې دوې (دوه) صفقې جمع نشوې.نو دوې (دوه) ځلې کيل کول به هم ضروري نه وي.او هر کله چې دوې (دوه) ځله کيل کول ضروري نشو.نو په کوم صورت کې چې مسلم اليه يو کُر غنم واخستل.او رب السلم ته ئې د خپل حق ادا کاوه لپاره په دې باندې د قبضه کاوه حکم اوکړو.نو په دې صورت کې د مسلم اليه حق اداکيدل پکار وو.حالانکه تاسو فرمائيلي دي.چه په دې صورت کې به دمسلم اليه حق نه اداکيږي؟

ځواب°ددې ځواب دادې.چه بيع سلم اګرچه وړاندې ده.يعنی دمسلم اليه د اخستلو نه وړاندې اګرچه عقدسلم شوې وو.خو د رب السلم په مسلم فيه باندې قبضه کول د مسلم اليه د اخستلو نه روسته دی.او په مسلم فيه باندې قبضه کول د ابتداء بيع په مرتبه کې دی.نو ګويا رب السلم او مسلم اليه دواړو په دې مقبوضه غنمو باندې د سره دوباره عقد کړې دی.او په مسلم فيه باندې د قبضه نه وړاندې ددې په بدله کې د دوهم شي اخستل

(١) تقدم تخريجه فى المرابحة والتولية)_

لازمېږي. حالانکه د قبضه نه وړاندې د مسلم فيه په بدله کې د هر يوڅيز اخستل حرام دي. ددې ځواب دادې چه دا مخصوص حکم يعنې د استبدال په حرمت کې دين او مال عين ( مقبوض) دواړه يوڅيز شمارلې شي. يعنې دا دواړه يو شي دي. په دې دواړوکې څه غيريت نشته ځکه که دين د مال عين غير اومنلې شي. نود مسلم فيه تبادله لازمېږي. حالانکه ،، استبدال بالمسلم فيه ،، حرام دي. نو خاص طور باندې د استبدال حرامېدلو په حق کې دين اومال عين دواړه يو منلې شوی دی. خو ددې نه علاوه په باقه تولو ځايونوکې دين په حقيقت کې د مال عين غير وی. او هرکله چې دين يعنې مسلم فيه د مال عين يعنې د مقبوضه غنمو غير شو. نو ګويا مسلم اليه يوکړ غنم واخستل. او درب السلم په لاس ئې د مسلم فيه يعنې د دين په عوض خرڅ کړی دی. او په دې صورت کې د دوه صفقو جمع کيدل ښکاره دی. او هرکله چې دوې (دوه) صفقې جمع شوې. نو دوې (دوه) ځله به کيل کول هم ضروری وی. نو په کوم صورت کې چې صرف دوې (دوه) ځله کيل شوی دې. په هغه صورت کې به د مسلم اليه د اړخه اداکول معتبر نه وی. او رب السلم به خپل حق وصولونکې شمارلې شي.

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ سَلَمًا وَكَانَ قَرْضًا اوکه سلم نه وی. ( بلکه) قرضه وی فَأَمَرَهُ بِقَبْضِ الْكُرِّ بيا قرضدارې قرضخواه ته په کُر باندې د قبضه حکم ورکړو جَازَ نو دا جائز دی لِأَنَّ الْ پور إِعَارَةٌ ځکه چې پور عارية ورکول دی ( واخستل) وَلِهَذَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظِ الْإِعَارَةِ اوهم په دې وجه په لفظ د اعاره سره پور منعقد کيږي فَكَانَ الْمَرْدُودُ عَيْنَ الْمَأْخُوذِ مُطْلَقًا حُكْمًا نو په حکم دشرع چې کوم واپس کړې شوې دې. هغه مطلقاً بعينه هم هغه دې. کوم چې اخستې شوې دې فَلَا تَجْتَمِعُ الصَّفْقَتَانِ نو دوې (دوه) صفقه به نه جمع کيږي.

تشريح:- صاحب دهدايه ﷫ فرمائي. که بيع سلم نه وی. بلکه پور وی. يعنې هرکله چې يوسړي يوکړغنم پور واخستل. بيا قرضدارې واخستل. او قرضخواه ته ئې د قبضه کاوه حکم اوکړو. اودا ئې اونه وئيل. چه مخکې ئې زما لپاره قبضه کړه. بيا ئې خپل ځان لپاره قبضه کړه. نو قرضخواه په دې باندې قبضه اوکړله. يعنې يوځل ئې کيل اوکړو. او پخپله قبضه کې ئې واخستل. نودا جائز دی. ځکه چې قرضه په عاريت ( يعنې يوڅو ورځو) باندې د ورکاوه نوم دې. اوکه قرضه په عاريت باندې د ورکاوه نوم نه وی. نو «تمليك الشئ بجنسه نسيئة» به لازمېږي. يعنې قرضدارې چې کوم شئ اخستې وو. قرضخواه ته بجنسه پور واپس کړې شو. اودا رباء ده. نو ثابته شوه. چه پور په عاريت باندې د ورکاوه نوم دې. هم دا وجه ده. چه په لفظ اعاره سره پور منعقد کيږي. که يوکس اووئيل. «اعرتك هذا الدرهم» نو په دې سره به پور منعقد کيږي. چونکه په پور کې ميعاد لازم نه وی. بلکه په عاريت باندې ورکونکې ته هروخت د شئ مستعار واپس اخستلو حق وی. ځکه به په پور کې هم ميعاد لازم نه وی. نو معلومه شوه. چه پور په عاريت باندې د ورکولونوم دې. او په عاريه کې په عاريت باندې اخستونکې د شريعت په حکم کې بعينه هم هغه شئ واپس کوی. کوم چې ده د معير نه اخستې وو. نو د قرضه په صورت کې چې قرضدار کوم شئ واپس کوی. دا به مطلق د هغه شئ عين وی. په کوم چې قرضدار قبضه کړې وه. يعنې د استبدال په حق کې به هم د شئ مردود او شئ مقبوض په مينځ کې عينيت ثابت وی. اود استبدال نه علاوه په نورو ځايونوکې به هم عينيت ثابت وی. او هرکله چې شئ مردود بعينه شئ ماخوذ او شئ مقبوض دې. نود قرضدارې د خپلې ذمې نه د پور ادا کاوه لپاره د پور په مال باندې قرضخواه ته د قبضه حکم ورکول. اود قرضخواه په دې باندې قبضه کول به د بيع په مرتبه کې نه وی. اوهرکله چې دا قبضه د بيع په مرتبه کې نشوه. نو دلته کې دوې (دوه) صفقې جمع نشوې. بلکه صرف يوه صفقه موجود شوه. يعنې دقرضدارې خپل بائع نه اخستل. او هرکله چې د پور په صورت کې صرف يوه صفقه موجود ده. نو يوځل به کيل کول کافی وی. دوې (دوه) ځل به د کيل کاوه اړتيا نه وی. نو ثابته شوه. چه د قرضخواه يوځل کيل کول دا د مشترې يعنې د قرضدارې د اړخه دوکالت په حق سره کيل کول دی. اود قرضخواه اود قرضدارې په مينځ کې چونکه هيڅ صفقه اونه موندې شوه. په دې وجه قرضخواه له د خپل ځان لپاره د قبضه کاوه لپاره دوباره کيل کاوه اړتيا نشته دې.



**د رب السلم په حکم سره دده په غير موجودګئ کښې د مسلم اليه د ناپ تول حکم**

قَالَ فرمايي وَمَنْ أَسْلَمَ فِي كُرٍّ اوکه يو کس په يوکُر غنمو کې بيع سلم اوکړو فَأَمَرَ رَبُّ السَّلَمِ بيا رب السلم مسلم اليه ته حکم ورکړو أَنْ يَكِيلَهُ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ فِي غَرَائِرِ رَبِّ السَّلَمِ چې ده ته رب السلم ( زما) په تهيلوکې ناپ کړه فَفَعَلَ وَهُوَ غَائِبٌ نو مسلم اليه په داسې حال کې ناپ کړل چه رب السلم غائب دې لَمْ يَكُنْ قَضَاءً نودا به ( د مسلم اليه د اړخه ) اداني واجب نه وی لِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْكَيْلِ لَمْ يَصِحَّ ځکه چې د رب السلم د ناپ کولوحکم کول صحيح نه دی لِأَنَّهُ لَمْ يُصَادِفْ مِلْكَ الْآمِرِ ځکه چې د رب السلم حکم د آمر ( رب السلم) ملك نه دې موندلې.

حل اللغة: ① غرائر-تيلی-② صادف-اوموندو-③ الطحن-دغنمو اوړه کول-④ المديون-قرضدار

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. چه يوکس د يوکُرغنمو بيع سلم اوکړو بيا رب السلم مسلم اليه ته حکم اوکړو. چه دې يوکُر غنم ناپ کړی. او زما په تهيلوکې ئې واچوی. بيا مسلم اليه د رب السلم په غير موجودګئ کې ( يوکُر غنم) ناپ کړل، اودا ئې په تهيلوکې واچول. نو په داسې کولو سره به د مسلم اليه د اړخه د مسلم فيه اداکول صحيح نه وی. نوکه اوس دا غنم هلاك شی. نود مسلم اليه مال به ضائع وی. د رب السلم نقصان به نشی شمارلې.

لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الدَّيْنِ دُونَ الْعَيْنِ ځکه چې د رب السلم حق په دين (غيرمعين ) کې دې. په کوم مال معين کې نه دې فَصَارَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ مُسْتَعِيرًا لِلْغَرَائِرِ مِنْهُ نو مسلم اليه به دا تهيلۍ د رب السلم نه په عاريت سره اخستونکې وی وَقَدْ جَعَلَ مِلْكَ نَفْسِهِ فِيهَا په داسې حال کې چې هغه خپل مملوکه شئ په دې تهيلوکې اچولې وی فَصَارَ كَمَا لَوْ كَانَ عَلَيْهِ دَرَاهِمُ دَيْنٍ نودا داسې شوه. لکه مثلاً په ده باندې دراهم پور وی فَدَفَعَ إِلَيْهِ كِيسًا بيا قرضخواه قرضدار ته خپلې تهيلۍ ورکړلې لِيَزِنَهَا الْمَدْيُونُ فِيهِ چې قرضدار دا دراهم په دې کې وزن کړی لَمْ يَصِرْ قَابِضًا نو قرضخواه به پخپله قرضه باندې قبضه کونکې نه وی.

تشريح:- ددې دليل دادې. چه درب السلم حق په دين کې دې. په څه مال معين کې نه دې. او دين يو داسې وصف دې. کوم چې په ذمه کې ثابت وی. او داسې وصف په تهيلوکې اچول يو امرمحال دې. نود رب السلم د ناپ کولوحکم دده ملك نه دې موندلې. بلکه دمسلم اليه حکم ئې موندلې دې. اوهرکله چې د رب السلم حکم دده ملك نه دې موندلې. نودده داحکم،، چې ناپ کړله،، صحيح نشو. اودا داسې شوه. ګويامسلم اليه د رب السلم نه دا تهيلۍ عارية واخستلې. او په دې کې ئې خپل ذاتی شئ اچولې دې. اودا ښکاره ده. چه په داسې کاوه سره مسلم اليه د خپل حق يعنې مسلم فيه اداکونکې نشی شمارلې. نوثابته شوه. چه په دې صورت کې د مسلم اليه د اړخه اداني واجب نشوه. او رب السلم به د خپل حق وصولونکې نشی شمارلې. او ددې مثال داسې دې. لکه د قرضدارې په ذمه د يوکس دراهم وو. نو قرضخواه خپله تهيلۍ ددې لپاره ورکړله. چه دې دراهم په دې کې وزن کړی. حالانکه په داسې کولو سره قرضخواه د خپلې پور نه مالك کيږي. او پور به نه اداکيږي. نوهم دغه ډول به رب السلم هم قابض نه وی.

**د مشتری په حکم دده په غير موجودګئ کښې د بائع د ناپ تول حکم**

وَلَوْ كَانَتِ الْحِنْطَةُ مُشْتَرَاةً اوکه غنم اخستې شوی وی وَالْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا اود باقه مسئلې صورت پخپل حال وی صَارَ قَابِضًا نو مشتری به قابض وی لِأَنَّ الْأَمْرَ قَدْ صَحَّ په دې وجه د مشتری حکم ورکول صحيح شو حَيْثُ صَادَفَ مِلْكَهُ ځکه چې دده حکم دده ملك موندلې دې لِأَنَّهُ مَلَكَ الْعَيْنَ بِالْبَيْعِ ځکه چې د بيع په وجه مشتری ددې مال عين مالك شوې دې.

تشريح:- مسئله داده. چه يوکس معين غنم واخستل. اومشتری بائع ته خپلې تهيلۍ ورکړلې. او وې وئيل. چه دا ناپ کړه. او زما په دې تهيلوکې ئې واچوه. نو بائع په داسې حالت کې غنم ناپ کړل. اود مشتری په تهيلوکې ئې واچول. چه مشتری موجود نه وو. نو په دې صورت کې به مشتری قابض وی. او بائع به مبيع سپارونکې شمارلې شی.

① دليل دادې. چه صرف په اخستلو سره مشتری دغنمو مالك شوې دې. نو مشتری خپل مملوکه شئ پخپلو مملوکه

تهیلوکي د اچولوحکم ورکړي دي.اوچونکه د خپل مملوکه شی پخپلو مملوکه تهیلوکي د اچولوحکم کول ټیک دی.په دې وجه د مشتري داحکم کول به هم ټیک وی.اوهرکله چې دمشتري داحکم کول ټیک دی.نو بائع د مشتري د اړخه په تهیلوکي دغنمو اچولو وکیل شو.او تهیلۍ د مشتري مملوك کیدلو په وجه چونکه حکماً د مشتري قبضه کي دی.په دې وجه کوم غنم چې په دې کي اچولې شوی دی.هغه به هم د مشتري په قبضه کي وی.نو ثابته شوه.که بائع د مشتري په حکم سره دده په تهیلوکي غنم اچولی وی.نو مشتري به قابض وی.او بائع به بری الذمه وی.

| |
|---|
| **أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ لَوْ أَمَرَهُ بِالطَّحْنِ** آیا نه ګورې که ده د غنمو اوړه کاوه حکم ورکړو **كَانَ الطَّحِينُ فِي السَّلَمِ لِلْمُسْلَمِ إِلَيْهِ** نود سلم په صورت کي به دا اوړه د مسلم الیه وی **وَفِي الشِّرَاءِ لِلْمُشْتَرِي** اود اخستلو په صورت کي به د مشتري وی **لِصِحَّةِ الْأَمْرِ** ځکه چې د مشتري حکم صحیح دی. |

**تشریح:-** ددې مثال دادې.چه رب السلم،مسلم الیه ته د مسلم فیه یعنی د غنمو اوړه کاوه حکم اوکړو.مسلم الیه د حکم مطابق دا اوړه کړل.نو اوړه به د مسلم الیه لپاره وی.تردې که مسلم الیه اوړه واخستل.نو حرام به وی.په دې صورت کي مسلم فیه یعنی په غنمو باندې د قبضه نه وړاندې ددې تبادله کول لازمیږی.حالانکه دقبضه نه وړاندې د مسلم فیه عوض څه بل شی اخستل جائز نه دی.اوکه غنم د بیع سلم نه بغیر د مطلق بیع لاندې واخستلی شو.بیا مشتري بائع ته ددې د اوړه کاوه حکم اوکړو.او بائع د مشتري د حکم مطابق دا اوړه کړل.نو اوړه به د مشتري لپاره وی.ځکه چې د مشتري د اوړه کاوه حکم کول صحیح دی.نو که په دې صورت کي اوړه هلاك شو.نودا به د مسلم الیه مال هلاك وی.اود رب السلم دین چې څنګه په ده واجب وو.هم هغه شان به واپس دین وی.اوکه د اخستلو په صورت کي اوړه هلاك شو.نودا به د مسلم الیه مال ضائع وی.او په مشتري به دده ثمن واجب وی.

| |
|---|
| **وَكَذَا إِذَا أَمَرَهُ أَنْ يَصُبَّهُ فِي الْبَحْرِ فِي السَّلَمِ** اوهم دغه ډول که مشتري بائع ته حکم ورکړو.چه دا مال سمندر ته اوغورزوه **يَهْلِكُ مِنْ مَالِ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ** نود سلم په صورت کي به دا مال د مسلم الیه برباد وی **وَفِي الشِّرَاءِ مِنْ مَالِ الْمُشْتَرِي** اود اخستلو په صورت کي به د مشتري مال هلاك وی **وَيَتَقَرَّرُ الثَّمَنُ عَلَيْهِ** او په ده باندې ثمن واجبیږی **لِمَا قُلْنَا** د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو. |

**حل اللغة:** ① البحر-سمندر-② یهلك-هلاکیږی-③ یتقرر-واجبیږی-④ الاکتفاء-بسوالي

**تشریح:-** دغه ډول که رب السلم مسلم الیه ته حکم اوکړو.چه دې مسلم فیه سمندر ته اوغورځوی.نو مسلم الیه دا په سمندرکي اوغورځول.نودا به د مسلم الیه مال هلاك وی.ځکه چې د سلم په صورت کي د رب السلم حکم صحیح نه دې.اوکه مشتري بائع ته ددې حکم ورکړو.نود مشتري مال به هلاك وی.اوپه مشتري به دده ثمن واجب وی.ځکه چې د مشتري حکم ورکول صحیح دی.

| |
|---|
| **وَهَٰذَا يُكْتَفَىٰ بِذَٰلِكَ الْكَيْلِ فِي الشِّرَاءِ فِي الصَّحِيحِ** اوهم په دې وجه په شراء کي د صحیح قول مطابق به په هغه کیل باندې اکتفاء کولای شی **لِأَنَّهُ نَائِبٌ عَنْهُ فِي الْكَيْلِ** اوهم په دې وجه په شراء کي د صحیح قول مطابق به په هغه کیل باندې اکتفاء کولای شی **وَالْقَبْضِ بِالْوُقُوعِ فِي غَرَائِرِ الْمُشْتَرِي** ځکه چې بائع په ناپ کاوه کي د مشتري نائب دې.اود مشتري په تهیلوکي اچولو باندې مشتري قابض شوې دې. |

**تشریح:-** چونکه د مشتري خپل بائع ته حکم ورکول صحیح کیږی.په دې وجه د اخستلو په صورت کي صرف د بائع کیل کول کافی دی.هم داصحیح قول دې.ځکه چې بائع په کیل کولوکي د مشتري نائب شو.اود مشتري په تهیلوکي په ډکولو سره مشتري قابض شو.اوچونکه د نائب فعل په حقیقت کي د اصل فعل وی.په دې وجه د بائع کیل کول په حقیقت کي د مشتري کیل کول شو.اوهرکله چې د بائع کیل کول په حقیقت کي د مشتري کیل کول



شو.نودا اعتراض به هم نه واقع کیږی.چه د بائع مسلم (اداکونکې) اومتسلم (قبضه کونکې) لازمیږی.ځکه چې اوس به بائع مسلم (اداکونکې) اومشتري متسلم (قبضه کونکې) وی.

### د بائع په حکم دده په غیرموجودګۍ کښې د مشتري د ناپ تول اود قبضې حکم

| |
|---|
| **وَلَوْ أَمَرَهُ فِي الشِّرَاءِ** اوکه د اخستلو په صورت کي مشتري بائع ته حکم ورکړو **أَنْ يَكِيلَهُ فِي غَرَائِرِ الْبَائِعِ** چې مبیع د بائع په تهیلوکي کیل کړی **فَفَعَلَ** نو هغه (د مشتري په غیرموجودګۍ کي) داسې اوکړل **لَمْ يَصِرْ قَابِضًا** نو مشتري به قابض نه وی **لِأَنَّهُ اسْتَعَارَ غَرَائِرَهُ** ځکه چې مشتري د بائع تهلۍ مستعار واخستلې **وَلَمْ يَقْبِضْهَا** او په دې ئې قبضه اونکړله **فَلَا تَصِيرُ الْغَرَائِرُ فِي يَدِهِ** نو تهیلۍ به د مشتري په قبضه کي نه وی **فَكَذَا مَا يَقَعُ فِيهَا** نو کوم شی چې په تهیلو کي دې.هغه به هم دده وی. |

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که مشتري بائع ته حکم اوکړو.چه دې مبیع ناپ کړی.اوپخپلو تهیلوکي ئې واچوی.نو بائع د مشتري په غیر موجودګۍ کي مبیع ناپ کړو.او پخپلو تهیلوکي ئې واچولو.نو مشتري به په مبیع باندې قابض نه وی.ځکه چې مشتري د بائع تهیلۍ عاریة غوښتې دی.خو په دې ئې قبضه نه ده کړې.او اعاره چونکه یوعقد تبرع دې.چه د قبضه نه بغیر نه تمامیږی.ځکه به اعاره هم د قبضه نه بغیر نه تام کیږی.او هرکله چې اعاره تام نشوه.نودا تهیلۍ به دمشتري په قبضه کي نشی شمارلې.او هرکله چې تهیلۍ د مشتري په قبضه کي نشوې.نو کوم مبیع چې په دې کي اچولې شوې دی.په دې به هم د مشتري قبضه نشی شمارلې کیدلې.

| |
|---|
| **وَصَارَ** اودا داسې شوه **كَمَا لَوْ أَمَرَهُ** لکه چې مشتري بائع ته حکم ورکړو **أَنْ يَكِيلَهُ** چې دا غله کیل کړی **وَيَعْزِلَهُ فِي نَاحِيَةٍ مِنْ بَيْتِ الْبَائِعِ** اود خپل کور په یو ګوټ کي ئې جلا کړی **لِأَنَّ الْبَيْتَ بِنَوَاحِيهِ فِي يَدِهِ** ځکه چې کور سره د خپلو ګوټونو د بائع په قبضه کي دې **فَلَمْ يَصِرِ الْمُشْتَرِي قَابِضًا** نو مشتري به قابض نه وی. |

**حل اللغة:** ① النواحي-جمع د ناحیة، ګوټ-② الاعتزال-خانله کیدل-③ یصیر-ګرځی-④ خاتم-ګوتمه

**تشریح:-** اودا داسې شوه.لکه چې مشتري بائع ته حکم اوکړو.چه دې مبیع کیل کړی.اود خپل کور په یوګوټ کي ئې کیږدی.نو بائع د مشتري په غیرموجودګۍ کي کیل اوکړو.اود خپل کور په یوګوټ کي ئې کیخودل.نو مشتري به په دې سره هم قابض نشی شمارلې.ځکه چې کور سره د ټولو طرفونو او اړخونو د بائع په قبضه کي دی.ځکه چې مشتري یو ګوټ د بائع نه مستعار اخستې دې.خو په دې ئې قبضه نه ده کړې.نود قبضه نه کاوه په وجه اعاره تام نشوه.اوهرکله چې اعاره تام نشوه.نو مشتري به په دې ګوټ باندې قابض هم نشی شمارلې.او هرکله چې د کور په ګوټ باندې د مشتري قبضه اونشوه.نو کومه غله چې په دې کي ایخودلې شوې ده.په دې به هم د مشتري قبضه نشی شمارلې کیدلې.

### د دین او عین جمع کیدلو په صورت کښې د مشتري د قبضې حکم

| |
|---|
| **وَلَوِ اجْتَمَعَ الدَّيْنُ وَالْعَيْنُ** اوکه دین او عین دواړه جمع شو **وَالْغَرَائِرُ لِلْمُشْتَرِي** او تهیلۍ د مشتري دی **إِنْ بَدَأَ بِالْعَيْنِ** نوکه ده وړاندې مال عین ډك کړو **صَارَ قَابِضًا** نو مشتري به قابض وی **أَمَّا الْعَيْنُ** بهرحال مال عین **فَلِصِحَّةِ الْأَمْرِ فِيهِ** خو ځکه چې په دې کي د کیل کاوه حکم صحیح شوې دې **وَأَمَّا الدَّيْنُ** او بهرحال دین **فَلِاتِّصَالِهِ بِمِلْكِهِ** ځکه چې دا د مشتري ملکیت سره ملاؤ شوې دې **وَبِمِثْلِهِ يَصِيرُ قَابِضًا** او په داسې ملاوولو سره مشتري قابض کیږی. |

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی د بل کس سره د یوکُر غنمو بیع سلم اوکړلو.اود مسلم فیه ادا کاوه لپاره ئې د یومیاشت میعاد مقررکړلو.نو په میعاد پوره کیدلو باندې رب السلم د مسلم الیه نه یوکُر غنم معین واخستل.نو اوس په مسلم الیه باندې د دوې (دوه) کُره غنمو سپارل واجب شو.یوکُر مسلم فیه کوم چې په دین سره تعبیر کړې شوی دی.او یوکُر مبیع کوم چې په عین سره تعبیر کړې شوې دی.نو هرکله چې مشتري بائع ته خپلې تهیلۍ ورکړلې.او وې ویل.چه دین یعنی مسلم فیه اوعین یعنی مبیع دواړه په یوه تهیلۍ کي واچوه.نو بائع د مشتري په غیرموجودګۍ کي دا دواړه په دې تهیلوکي واچول.اوس که بائع چې دې مسلم الیه هم دې.ده مخکي په

تهيلوکي مال عين يعنى مبيع واچول.او بيا ئې دين يعنى مسلم فيه واچول.نو مشتري کوم چې رب السلم هم دې.په دې دوارو به قابض شي.په مال عين يعنى په مبيع باندې به ځکه قابض وي.چه مبيع چونکه د معين کيدلو په وجه دده مملوک دې.په دې وجه دده د ناپ کول اود کيل کاوه حکم کول به صحيح وي.اود وکيل او نائب فعل چونکه د موکل فعل شمارلې کيږي.په دې وجه د بائع مبيع کيل کول،

کَمَنْ اسْتَ پور حِنْطَةً لکه مثلاً يو کس غنم پور واخستل وَأَمَرَهُ او پور ورکونکي ته ئې حکم اوکړو أَنْ يَزْرَعَهَا فِي أَرْضِهِ چې هغه دا زما په مځکه کي اوکرى وَكَمَنْ دَفَعَ إِلَى صَائِغٍ خَاتَمًا اولکه مثلاً يو کس زرګر ته ګتمه ورکړه وَأَمَرَهُ أَنْ يَزِيدَهُ مِنْ عِنْدِهِ نِصْفَ دِينَارٍ او هغه ته ئې حکم اوکړو چه په دې کي دخپل اړخه نيم دينار زيات کړي.

تشريح:- اود مشتري په تهيلوکي اچول داسې دى.لکه چې پخپله مشتري کيل کړې وي.او د کې کړې ئې وي.او مشتري په کيل کاوه او خپلو تهيلوکي اچولو سره چونکه قابض کيږي.په دې وجه په دې صورت کي به هم قابض کيږي.او دين يعنى مسلم فيه باندې د مشتري قبضه به ځکه ثابتيږي.چه مسلم فيه د مشتري ملك يعنى مال عين سره ملاؤ شوې دې.او پخپلوکي په رضامندئ سره په داسې ملاوولو سره هم چونکه قبضه ثابتيږي.ځکه به مشتري په دين يعنى په مسلم فيه باندې قابض شمارلې شي.لکه مثلاً يوکس يو کُرغنم پور واخستل.او پور ورکونکي ته ئې حکم اوکړو.چه دې دا زما په مځکه کي اوکرى.نو قرضه ورکونکي د قرضه اخستونکي دحکم مطابق دا غنم د قرضدار په مځکه کي اوکرل.نوچونکه دا غنم د قرضدار په ملك يعنى دده په مځکه کي ملاؤ شوي دى.ځکه به قرضدار په دې غنمو قبضه کونکې شمارلې شي.او لکه مثلاً يوکس زرګر ته خپله ګتمه ورکړله.چه په دې کي د خپل اړخه نصف دينار سره زر زيات کړه.نوهرکله چې زرګر په ګتمه کي په دغه اندازه سره زر ملاؤکړل.نو د ګتمې مالك به په دې هم قابض شمارلې شي.ځکه چې نصف دينار سره زر دده ملك يعنى ګتمې سره ملاؤشوي دى.

وَإِنْ بَدَأَ بِالدَّيْنِ اوکه بائع مخکې دين ( مسلم فيه) ډك کړل لَمْ يَصِرْ قَابِضًا نو مشتري به قابض نه وي أَمَّا الدَّيْنُ بهرحال په دين باندې نه قابض کيدل فَلِعَدَمِ صِحَّةِ الْأَمْرِ خو ځکه دى.چه دکيل کاوه حکم صحيح نشو وَأَمَّا الْعَيْنُ او باتې شو مال عين فَلِأَنَّهُ خَلَطَهُ بِمِلْكِهِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ نو ځکه چې بائع د سپارلو نه وړاندې دا دخپل ملك سره ملاؤ کړې دې فَصَارَ مُسْتَهْلِكًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نو د امام ابوحنيفه ﷫ په نيز چونکه هغه مال هلاك شو فَيَنْتَقِضُ الْبَيْعُ (١) ځکه به بيع ماتيږي وَهَذَا الْخَلْطُ غَيْرُ مَرْضِيٍّ بِهِ مِنْ جِهَتِهِ او داسې ملاوول د مشتري د اړخه ناخوښه دي لِجَوَازِ أَنْ يَكُونَ مُرَادُهُ الْبُدَاءَةَ بِالْعَيْنِ ځکه ممکن ده.چه د مشتري مراد ابتداء بالعين وي وَعِنْدَهُمَا هُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ نَقَضَ الْبَيْعَ اود صاحبينو ﷭ په نيز مشتري ته اختيار دى.که غواړي.بيع دې ماته کړي وَإِنْ شَاءَ شَارَكَهُ فِي الْمَخْلُوطِ اوکه غواړي نو بائع دې په مخلوط شئ کي شريك کړي لِأَنَّ الْخَلْطَ لَيْسَ بِاسْتِهْلَاكٍ عِنْدَهُمَا ځکه چې ملاوول د صاحبينو ﷭ په نيز تلف کول نه دى.

حل اللغة: ① يصير-کرځى-② البداءة-شروع-③ الجهة-طرف-④ الخلط-ګډون

تشريح:- اوکه بائع يعنى مسلم اليه وړاندې د سلم غنم يعنى مسلم فيه ئې د مشتري په تهيلوکي واچول.او بيا ئې هغه غنم واچول.کوم چې مبيع دى.نو په دې صورت کي به رب السلم يعنى مشتري په دې باندې قابض نشى شمارلې کيدلې.په دين يعنى په مسلم فيه به ځکه قابض نه شمارلې کيږي.چه درب السلم حق په دين کي دې.او دين يعنى مسلم فيه غيرمتعين دې.او کوم چې په تهيلوکي اچولى شوي دى.هغه عين يعنى معين دې.نودا تراوسه پورې د مسلم اليه مال دې.او هرکله چې دا د مسلم اليه مال دې.نود رب السلم حکم کول به ځنګه ټيك وي.او

١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله من نقض البيع كما ظهر من دأب المصنف رحمه الله وأصول الفتوى كذا في القول الراجح (٨٠١٢)-



هرکله چې د رب السلم حکم کول ټيك نه دى.نو رب السلم به هم په دې باندې قابض نشى شمارلې کيدلې.اوباتې شو مال عين،يعنى هغه غنم کوم ئې چې د بيع مطلق لاندې اخستې دى.نودا چونکه مشتري ته د سپارلو نه وړاندې د مسلم اليه ملك سره په داسې طريقه ملاؤ شوي دى.چه دا نشى جداکيدلې. نود امام ابوحنيفه ﷫ په نيز ګويا مبيع د قبضه نه وړاندې هلاك شو.اود مشتري د قبضه نه وړاندې د مبيع هلاکيدلو په صورت کي چونکه بيع فسخ کيږي.په دې وجه به په دې صورت کي بيع فسخ کيږي.او هرکله چې بيع فسخ شوه.نود مشتري د قابض کيدلو سوال هم نه پيداکيږي.

سوال: پاتې شو دا سوال چې مبيع د مسلم اليه ملك يعنى مسلم فيه سره ملاويدل،د مشتري په اجازت سره شوى دى.په دې وجه بيع فسخ کيدل پکار نه دى؟

ځواب:نو ددې ځواب دادې.چه مشتري په دې طريقه ملاوولو راضى نه وو.بلکه دې په دې طريقه په يوځائې کاوه راضى وو.چه په هغې سره دده قبضه متحقق شي.او هغه صورت دادې.چه مسلم اليه مخکې مال عين په تهيلوکي اچولې وو.اوبيا ئې دين يعنى مسلم فيه اچولې وو.نو هرکله چې دده د رضا مطابق ملاؤ نکړې شو.نو بيع به فسخ وي.اود صاحبينو ﷭ په نيز به په دې صورت کي مشتري ته اختيار وي.که غواړي.بيع دې فسخ کړي.او که غواړي.په شئ مخلوط کي دې مسلم اليه ځان سره شريك کړي.ځکه چې د صاحبينو ﷭ په نيز ملاؤ شوى يعنى مبيع (مال عين) د مسلم فيه (مال دين) سره ملاويدل استهلاك نه شمارلې کيږي.

## د مسلم اليه د قبضې نه روسته د اقاله په صورت کښې مشتري سره د وينځې هلاکيدل اود قيمت مسئله

قَالَ فرمايي وَمَنْ أَسْلَمَ جَارِيَةً فِي كُرِّ حِنْطَةٍ اوکه يوکس يوه وينځه د يوکُر غنمو په سلم کي ورکړله وَقَبَضَهَا الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ او مسلم اليه په دې باندې قبضه اوکړله ثُمَّ تَقَايَلَا بيا دواړو اقاله اوکړله فَمَاتَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي بيا دغه وينځه د مشتري (مسلم اليه) په قبضه کي مړه شوه فَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا يَوْمَ قَبَضَهَا بيا په مسلم اليه باندې ددې وينځې هغه قيمت واجب شو.کوم چې د قبضې په ورځ وو.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس په يوکُرغنموکي د يوې وينځې عقدسلم اوکړو.يعنى وينځه ئې راس المال او يوکُرغنم ئې مسلم فيه مقررکړل.او مسلم اليه په وينځه يعنى په راس المال باندې قبضه هم اوکړله.بيا دواړو د عقدسلم اقاله اوکړله.د اقاله نه روسته وينځه د مسلم اليه په قبضه کي مړه شوه.نود وينځې د مرګ په وجه به اقاله باطل نه وي.بلکه اقاله به درست وي.او په مسلم اليه به د وينځې د هغه ورځ قيمت واجب وي.په کومه ورځ چې ده په وينځه باندې قبضه کړې وه.

وَلَوْ تَقَايَلَا بَعْدَ هَلَاكِ الْجَارِيَةِ اوکه د وينځې هلاکيدو نه روسته ئې اقاله اوکړله جَازَ نو جائز ده.لِأَنَّ صِحَّةَ الْإِقَالَةِ تَعْتَمِدُ بَقَاءَ الْعَقْدِ ځکه چې د اقاله صحيح کيدل د عقد په بقاء باندې اعتماد کوي وَذَلِكَ بِقِيَامِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ اود عقد بقاء د معقود عليه په موجود کيدو سره کيږي وَفِي السَّلَمِ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ إِنَّمَا هُوَ الْمُسْلَمُ فِيهِ او په عقدسلم کي معقود عليه مسلم فيه وي فَصَحَّتِ الْإِقَالَةُ نو اقاله به صحيح وي حَالَ بَقَائِهِ د معقود عليه د بقاء په وخت وَإِذَا جَازَ ابْتِدَاءً او هرکله چې اقاله په ابتداء کي جائز شوه فَأَوْلَى أَنْ يَبْقَى انْتِهَاءً نو په انتهاء کي به په درجه اولى پاته وي لِأَنَّ الْبَقَاءَ أَسْهَلُ ځکه چې بقاء آسان ده.

الجارية-وينځه-② البقاء-پاته کيدل-③ الانتهاء-په اخرکي-④ الاسهل-زيات اسان

تشريح:- اوکه وينځه وړاندې مړه شوه.او اقاله روسته اوکړې شوه.نو بيا به هم اقاله جائز وي.ځکه چې اقاله هغه وخت صحيح کيږي.چه عقدموجود وي.او ددې وجه داده.چه اقاله د عقد فسخ کاوه نوم دې.اود عقدفسخ کيدل د عقدنه بغير نه کيږي.نو معلومه شوه.چه د اقاله صحيح کيدل د عقد په بقاء باندې موقوف دى.اود عقد بقاء په معقودعليه باندې موقوف دى.او په عقدسلم کي معقودعليه مسلم فيه وي.او مسلم فيه يعنى،،ماوجب فى الذمه،، موجود دې.نو هرکله چې مسلم فيه موجود دې.يعنى د مسلم اليه په ذمه دين ثابت دې.نو عقدسلم به هم موجود وي.او هرکله چې عقدسلم موجود دې.نو ددې اقاله به هم صحيح وي.او هرکله چې اقاله د وينځې د مرګ

نه روسته ابتداء جائز ده.لکه ځنګه چې په دویمه مسئله کي دی.نوکه د اقاله نه روسته وینځه مړه شوه.لکه ځنګه چې په ړومبۍ مسئله کي دی.نو اقاله به هم په درجه اولی پاته وی.ځکه چې بقاء د ابتداء په مقابله کي آسان وی.

| |
|---|
| وَإِذَا انْفَسَخَ الْعَقْدُ فِي الْمُسْلَمِ فِيهِ اوهر کله چې په مسلم فیه کي عقد فسخ شو انْفَسَخَ فِي الْجَارِيَةِ تَبَعًا نو تابع کیدو سره به وینځه کي هم فسخ کیږی فَيَجِبُ عَلَيْهِ رَدُّهَا نو مسلم الیه باندې به وینځه واپس کول واجب وی وَقَدْ عَجَزَ فَيَجِبُ عَلَيْهِ او هغه چونکه ددې نه عاجز شوی دی رَدُّ قِيمَتِهَا په دې وجه به په ده باندې ددې قیمت واپس کول واجب وی. |

**تشریح:-** داعبارت د یو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه د مردارې وینځې په حق کي به اقاله څنګه متحقق وی.په داسې حال کي چې مړزګي وینځه د اقالې محل نشي کیدلې؟ ځواب ددې ځواب دادی.چه مسلم فیه یعنی په یوکړ غنموکي عقدسلم بالذات او بلاواسطه فسخ شوې دې.خو د مردارې وینځې په حق کښې به التبع فسخ شوې ده.او ډیر شیان اګرچه قصداً نه ثابتیږی.خو تبعاً ثابتیږی.په دې وجه د مردارې وینځې په حق کښې به هم عقدسلم تبعاً فسخ کیږی.او هر کله چې د وینځې په حق کي عقدسلم فسخ شو.نو په مسلم الیه به ددې وینځې واپس کول واجب وی.خوچونکه مسلم الیه د وینځې د مرګ په وجه د واپس کاوه نه عاجز شوې دې.په دې وجه به ددې قائم مقام یعنی د وینځې قیمت واجب وی.او په قیمت کي به د هغه ورځې اعتبار کولې شی.په کومه ورځ چې مسلم الیه په وینځه باندې قبضه کړې وه.یعنی په مسلم الیه باندې به د وینځې هغه قیمت لازم وی.کوم چې د قبضه کاوه په ورځ وو.اګرچه د مرګ په ورځ ددې قیمت کم یا زیات وو.ځکه چې سبب یعنی قبضه چې کوم ضمان واجبوی.هم په دغه ورځ موجود شوې دې.ځکه به هم ددغه ورځې د قیمت اعتبار کولې شی.واضحه دې وی.که د رب السلم او مسلم الیه په مینځ کي د وینځې په قیمت کي اختلاف پیدا شو.نود رب السلم بینه به قبلولې شی.او رب السلم سره د بینه نه کیدلو په صورت کي به دمسلم الیه قول معتبر وی.

**د وینځې اخستلو نه روسته د اقاله په صورت کښې مشتري سره د وینځې هلاکیدل اود اقالې حکم**

| |
|---|
| وَلَوِ اشْتَرَى جَارِيَةً بِأَلْفِ دِرْهَمٍ اوکه یو کس یوه وینځه د یو زر درهمو په عوض واخستله ثُمَّ تَقَايَلَا بیا دواړو اقاله اوکړله فَمَاتَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي بیا د مشتري په قبضه کي وینځه مړه شوه بَطَلَتِ الْإِقَالَةُ نو اقاله به باطل وی وَلَوْ مَاتَتْ اوکه د وینځې د مرګ نه روسته دواړو اقاله اوکړله فَالْإِقَالَةُ بَاطِلَةٌ نو اقاله باطل ده لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ فِي الْبَيْعِ إِنَّمَا هُوَ الْجَارِيَةُ ځکه چې په بیع کي معقود علیه هم دا وینځه ده فَلَا يَبْقَى الْعَقْدُ بَعْدَ هَلَاكِهَا نود وینځې د مرګ نه روسته عقد پاته نه پاتې کیږی فَلَا تَصِحُّ الْإِقَالَةُ ابْتِدَاءً نو چونکه په ابتداء کي اقاله صحیح نه ده وَلَا تَبْقَى انْتِهَاءً په دې وجه به انتهاء کي هم پاته نه پاتې کیږی لِانْعِدَامِ مَحِلِّهِ ځکه چې د اقاله محل معدوم شوې دې. |

**حل اللغة:** ① ماتت-مړه شوه-② یبقی-پاته پاتې کیږی-③ الانعدام-نشتوالې-④ تقابلا-اقاله اوکړه

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یوکس د مطلق بیع لاندې د زر درهمو په عوض یوه وینځه واخستله.بیا بائع او مشتري پخپل منځ کي رضامندئ سره اقاله اوکړله.اود اقاله نه روسته وینځه د مشتري په قبضه کي مړه شوه.نود وینځې په مرګ سره به اقاله باطل شی.اوکه د وینځې د مرګ نه روسته اقاله اوکړې شوه.نو بیا به هم اقاله باطل وی.ځکه چې په دې بیع کي وینځه معقودعلیه ده.اود اقاله لپاره د معقودعلیه بقاء ضروری ده.نو هر کله چې معقود علیه مخکي هلاک شوه.او اقاله روسته اوشوه.نود اقاله محل یعنی دمعقودعلیه معدوم کیدلو په وجه د ابتداء نه اقاله صحیح نشوه.او هر کله چې اقاله وړاندې اوشوه.او معقودعلیه روسته هلاک شو.نود معقودعلیه پاته نه پاتې کیدلو په وجه به اقاله هم پاته نه پاتې کیږی.بلکه باطل به وی.

| |
|---|
| وَهَذَا بِخِلَافِ بَيْعِ الْمُقَايَضَةِ اودا د بیع مقایضه خلاف دې حَيْثُ تَصِحُّ الْإِقَالَةُ ځکه چې (په بیع مقایضه کي ابتداء) اقاله صحیح کیږی وَتَبْقَى بَعْدَ هَلَاكِ أَحَدِ الْعِوَضَيْنِ او هغه د احدالعوضین هلاکیدو نه روسته هم پاته کیږی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَبِيعٌ فِيهِ ځکه چې په مقایضه کي په دې دواړو کي هر یو مبیع وی. |



**تشریح:-** البته بیع مقایضه یعنی په ،،بیع العین بالعین،، کي که د احدالعوضین هلاکیدلو نه روسته اقاله اوکړې شوه.نو بیا هم جائز ده.اوکه د اقاله نه روسته احدالعوضین هلاک شو.نو بیا به هم اقاله پاته وی.

دلیل دادې.چه په بیع مقایضه کي دواړو عوضونوکي هریو عوض مبیع وی.او هر عوض ثمن وی.نو کوم عوض چې هلاک شی.هغه به ثمن ګرځولې شی.اوکوم چې پاته وی.هغه به بیع ګرځولې شی.اود مبیع موجود کیدلو په صورت کي چونکه اقاله صحیح کیږی.په دې وجه په دې صورت کي به اقاله ابتداءً هم ټیک وی.او بقاءً به هم ټیک وی.

**د مسلم الیه او رب السلم په مینځ کښې د ردي غنمو شرط اوعدم شرط اختلاف**

| |
|---|
| قَالَ فرمایي وَمَنْ أَسْلَمَ إِلَى رَجُلٍ دَرَاهِمَ فِي كُرِّ حِنْطَةٍ اوکه یوکس یو سړی ته د یو کُر غنمو په بیع سلم کي دراهم ورکړل فَقَالَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ شَرَطْتَ رَدِيئًا نو مسلم الیه اووئیل.چې ما د ردي شرط لګولې .. وَقَالَ رَبُّ السَّلَمِ لَمْ تَشْتَرِطْ شَيْئًا او رب السلم اووئیل.چه هیڅ شرط دې نه وولګولې فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ نود مسلم الیه قول به معتبر وی لِأَنَّ رَبَّ السَّلَمِ مُتَعَنِّتٌ فِي إِنْكَارِهِ الصِّحَّةَ ځکه چې دسلم د صحت انکار کاوه کي رب السلم سرکشي (ظلم) کوی لِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ يَرْبُو عَلَى رَأْسِ الْمَالِ فِي الْعَادَةِ ځکه چې په عامه توګه (عام طور) باندې مسلم فیه د راس المال نه زیات وی. |

**حل اللغة:** ① الاعتناد-ظلم کیدل-② یربو-زیاتیږی-③ راس المال-اصل سرمایه-④ العادة-عادت\رواج

**تشریح:-** متعنت: هغه کس دې.چه د نفع ورکونکی شي نه انکار اوکړی.او بل ته د ضرر رسولو اراده لري. مخاصم: هغه دې.چه د ضرر رسان شي نه انکار اوکړی.

**تشریح:-** یوسړی د یوکُر غنمو بیع سلم اوکړله.نو مسلم الیه اووئیل.چه ما د مسلم فیه ردی کیدلو شرط لګولې وو.او رب السلم اووئیل.چه هیڅ نه وولګولې شوې.ګویا مسلم الیه دعوه اوکړه.چه عقدسلم صحیح دې.او رب السلم دعوه اوکړه.چه عقدسلم صحیح نه دې.ځکه چې د سلم صحیح کیدلو لپاره دمسلم فیه وصف بیانول ضروری دی.نو هرکله چې مسلم الیه د مسلم فیه ردی کیدلو د شرط لګولودعوه اوکړله.نوګویا د سلم صحیح کیدلو دعوه ئې اوکړله.او رب السلم چونکه د وصف بیانولو انکار کوی.په دې وجه ګویا ده د عقد سلم صحیح کیدلو نه انکار اوکړلو.بهرحال په داسې صورت کي به د مسلم الیه قول معتبر وی.او دلیل ددې دادې.چه رب السلم د سلم د صحت نه د انکار کاوه په وجه متعنت دې.او متعنت ځکه دې.چه مسلم فیه په عامه توګه (عام طور) باندې د راس المال نه زیات وی.نود سلم په پاته ساتلو کي د رب السلم نفع ده.خودې سره ددې نه، منکر دې.اود نفع ورکونکی شي منکر ته چونکه متعنت وئیلې شی.ځکه رب السلم متعنت شو.اود متعنت قول شرعاً مردود وی.په دې وجه به د صحت سلم د انکار په سلسله کي د رب السلم قول معتبرنه وی.او هرکله چې د رب السلم قول معتبر نشو.نود مسلم الیه قول به معتبر وی.

د خادم په نیز ددې دلیل تقریر په دې طریقه هم کیدلې شی.چه اصل د عقدصحیح کیدل دی.اونه صحیح کیدل خلاف اصل او خلاف ظاهر دی.نود مسلم الیه قول چه،،ما د مسلم فیه ردی کیدلو شرط لګولې وو،او عقدسلم صحیح دې،،د ظاهر حال اود اصل موافق دې.اود رب السلم قول،،چه هیڅ شرط نه وولګولې شوې،او عقدسلم صحیح نه دې،،د ظاهرحال اود اصل خلاف دې.او فقهاؤ تصریح کړې ده.چه دچا قول د ظاهرحال اود اصل موافق وی.هغه مدعی علیه وی.او دچا قول چې د ظاهر حال اود اصل خلاف وی.هغه ته مدعی وئیلې شی.نو ددې تصریح مطابق مسلم الیه مدعی علیه او رب السلم مدعی شو.اومسئله په هغه صورت کي فرض شوې ده.چه مدعی سره بینه (ګواهان) موجود نه وی.اود حدیث «البينة على المدعي واليمين على من أنكر» په وجه که مدعی سره بینه موجود نه وی.نود مدعی علیه قول معتبر وی.په دې وجه په ذکرشوې مسئله کي به د مدعی علیه یعنی د مسلم الیه قول معتبر وی.(جمیل)

وَفِي عَكْسِهِ قَالُوا او ددې نه په عکس صورت کې مشائخ فرمايي يَجِبُ أَنْ يَكُونَ الْقَوْلُ لِرَبِّ السَّلَمِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ (۱) چې د امام ابوحنیفه رح په نیز د رب السلم قول به معتبر وی لِأَنَّهُ يَدَّعِي الصِّحَّةَ ځکه چې رب السلم د عقد صحیح کیدو دعوه کوی. وَإِنْ كَانَ صَاحِبُهُ مُنْكِرًا اګرچه دده اندیوال منکر دې وَعِنْدَهُمَا الْقَوْلُ لِلْمُسْلَمِ إِلَيْهِ اود صاحبینو رح په نیز د مسلم الیه قول به معتبر وی لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ ځکه چې مسلم الیه منکر دې وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ اګرچه دده د سلم د صحت انکار کړې دې وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او مونږ به دا انشاءالله روسته ثابت کوو.

**تشریح:-** علامه مرغینانی رح فرمانی. که د مسئلې صورت برعکس شو. یعنی رب السلم اوونیل.چه مسلم فیه د ردی کیدلو شرط لګولې وو.لهذاعقدسلم صحیح دې.او مسلم الیه اوونیل.چه ما هیڅ شرط نه وو لګولې.لهذا عقدسلم صحیح نه دې.نو په دې صورت کې احناف مشائخ رح فرمانی.چه د حضرت امام ابوحنیفه رح په نیز د رب السلم قول معتبر دې.اود صاحبینو رح په نیز به د مسلم الیه قول معتبر وی.

د امام صاحب رح دلیل دادې.چه په ظاهره اګرچه رب السلم دعقدسلم صحیح کیدلو مدعی دې.اومسلم الیه ددې منکر دې.خوحقیقت دادې.چه د رب السلم قول چونکه د ظاهرحال موافق دې.ځکه به رب السلم شرعاً مدعی علیه وی.اود رب السلم قول د ظاهرحال موافق ځکه دې.چه د رب السلم مطابق عقدسلم صحیح کیږی.اود مسلمان ښکاره حال دادې چه دې دعقدصحیح ارتکاب کوی.اود عقدفاسد او معصیت نه ډډه کوی.نو ثابته شوه.چه رب ا لسلم په حقیقت کې مدعی علیه دې.اود مسلم الیه قول،، چې ما هیڅ شرط نه دې لګولې،، د ظاهرحال خلاف دې.او دچا قول چې د ظاهرحال خلاف وی. هغه ته: مدعی ونیلې شی.ځکه به په دې صورت کې مسلم الیه مدعی وی.او مدعی یعنی مسلم الیه سره چونکه بینه (ګواهان) موجود نه دی.په دې وجه مدعی علیه یعنی د رب السلم قول معتبر وی.

د صاحبینو رح د مدعی اومدعی علیه په حقیقی تعریف باندې د نظرکولونه بغیر صرف دومره اوکتل.چه رب السلم د صحت سلم مدعی دې.اومسلم الیه د صحت سلم منکر دې.اود بینه نه موجودیدلو په صورت کې د منکر قول معتبر وی.ځکه به د مسلم الیه قول معتبر وی.حالانکه دا خبره د حقیقت نه په میلونو لرې ده.

### د مسلم الیه او رب السلم په مینځ کښې د مودې اوعدم مودې اختلاف

وَلَوْ قَالَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ او که مسلم الیه اوونیل لَمْ يَكُنْ لَهُ أَجَلٌ چې (د مسلم فیه ادا کاوه دپاره) هیڅ میعاد (مقرر) نه وو وَقَالَ رَبُّ السَّلَمِ او رب السلم اوونیل بَلْ كَانَ لَهُ بلکه ددې لپاره میعاد وو فَالْقَوْلُ قَوْلُ رَبِّ السَّلَمِ نود رب السلم قول به قبول وی. لِأَنَّ الْمُسْلَمَ إِلَيْهِ مُتَعَنِّتٌ فِي إِنْكَارِهِ حَقًّا لَهُ وَهُوَ الْأَجَلُ ځکه چې مسلم الیه د خپل حق یعنی د میعاد انکار کولوکي متعنت (سرکش) دې وَالْفَسَادُ لِعَدَمِ الْأَجَلِ غَيْرُ مُتَيَقَّنٍ اود میعاد نه کیدلو په وجه فساد غیریقینی دې لِمَكَانِ الْاجْتِهَادِ ځکه چې (په دې کې) اختلاف او اجتهاد دې فَلَا يُعْتَبَرُ النَّفْعُ فِي رَدِّ رَأْسِ الْمَالِ نود راس المال واپس کولوکي به نفع معتبر نه وی بِخِلَافِ عَدَمِ الْوَصْفِ په خلاف د وصف د عدم بیان،

**حل اللغة:** ① اجل-نیټه-② متعنت-سرکش-③ غیر متیقن-غیر یقینی-④ نفع-ګټه

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که د رب السلم او مسلم الیه په مینځ کې په میعاد مقررولوکي اختلاف شو.مسلم الیه اوونیل.چه د مسلم فیه ادا کاوه لپاره هیڅ میعاد نه وو مقرر شوې.او رب السلم اوونیل.چه میعاد مقرر شوې وو.نو په دې صورت کې په اتفاق د احنافو رح د رب السلم قول معتبر وی.هم دا د امام شافعی رح قول دې.ځکه چې مسلم الیه کله خپل حق او ګټور شې یعنی د میعاد انکار اوکړلو.نو دده کلام تعنت شو.او دې پخپله متعنت او سرکش شو.او وړاندې تیرشوی دی.چه د متعنت او سرکش کلام مردود وی.ځکه به دمسلم الیه کلام مردود وی.او هرکله چې د مسلم الیه کلام مردود دې.نو دده د اندیوال یعنی د رب السلم کلام به معتبر وی.

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في شرح عقود رسم المفتي (ص،۳۰) كذا في القول الراجح (۸۰۱۲)-



(وَالْفَسَادُ لِعَدَمِ الْأَجَلِ......الخ) سره د یوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه مسلم الیه د میعاد په انکار کولوکي متعنت نه دې.ځکه چې د میعاد نه د انکار کاوه په وجه عقدسلم فاسد شو.اود عقد فاسدیدلو په وجه به مسلم الیه راس المال واپس کوی.او کله چې مسلم الیه راس المال واپس کوی.نو مسلم فیه به دده لپاره سلامت پاتې وی.او چه مسلم فیه بهرصورت د راس المال نه غوره او زیات نافع وی.نو ګویا مسلم الیه د میعاد نه انکار اوکړلو.نود ګټور شي نه ئې انکار نه دې کړې.بلکه نفع مند شي یعنی مسلم فیه ئې ځان لپاره محفوظ کړلو.او ضرر رسان شي یعنی راس المال ئې واپس کړلو.اوداسې کونکی ته متعنت نه وائی.نو هرکله چې مسلم الیه متعنت نشو.نو دده کلام هم ردکول پکار نه وو.حالانکه تاسو فرمائیلي دی.چه د مسلم الیه کلام مردود دې.

ځواب• ددې ځواب دادې.چه د میعاد نه کیدلو په وجه عقدسلم فاسدیدل یقینی نه دی.ځکه چې دا مسئله مختلف فیه ده.ځکه چې د امام شافعی رح په نیز عقدسلم حالی یعنی د میعاد نه بغیر هم جائز دې.اګرچه د نورو عالمانو په نیز جائز نه دې.نو چونکه د میعاد نه د انکار کاوه په صورت کې دعقدسلم فساد یقینی نه دې.په دې وجه د میعاد نه د انکار کاوه په وجه د راس المال واپس کول نه لازمیږی.او هرکله چې د راس المال واپس کول نه لازمیږی.نو ددې انکار په وجه د مسلم الیه لپاره په پوره طریقه نفع هم نه حاصلیږی.البته میعاد کوم چې د مسلم الیه ظاهری حق او نفع ده.ددې نه د انکار کاوه په وجه به مسلم الیه ضرور متعنت او سرکش وی.اود متعنت قول چونکه مردود وی.ځکه به د مسلم الیه قول مردود وی.او هرکله چې د مسلم الیه قول مردود شو.نود رب السلم قول به معتبر وی.ددې په خلاف که مسلم الیه اوونیل.چه ما د مسلم فیه د ردی کیدلو شرط لګولې وو.او رب السلم اوونیل.چه د مسلم فیه هیڅ وصف نه وو بیان شوې.نو په دې صورت کې به د مسلم الیه قول معتبر وی.ځکه چې د وصف د عدم بیان په وجه د بیع سلم فاسدیدل یقینی او غیرمختلف فیه دی.ځکه به رب السلم د وصف بیانولو نه په انکار کولو سره متعنت او متمرد شمارلې کیږی.اود متعنت کیدلو په وجه به دده قول معتبر نه وی.بلکه دمسلم الیه قول به معتبر وی.

وَفِي عَكْسِهِ او ددې په عکس صورت کې الْقَوْلُ لِرَبِّ السَّلَمِ عِنْدَهُمَا د صاحبینو رح په نیز د رب السلم قول به معتبر وی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ حَقًّا لَهُ عَلَيْهِ ځکه چې هغه پخپل ځان باندې د یوحق کیدلو نه انکارکوی فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو هم دده قول به قبول وی وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ اګر چې هغه د سلم د صحت منکر دې كَرَبِّ الْمَالِ إِذَا قَالَ لِلْمُضَارِبِ لکه مثلاً کله چې رب المال مضارب ته اوونیل. شَرَطْتُ لَكَ نِصْفَ الرِّبْحِ إِلَّا عَشَرَةً چه ما ستا لپاره د لس درهمو نه علاوه د نیمې نفعې شرط کړې وو وَقَالَ الْمُضَارِبُ لَا او مضارب اوونیل.نا (دا شرط نه ووکړې) بَلْ شَرَطْتَ لِي نِصْفَ الرِّبْحِ بلکه تا زما لپاره د نیمې نفعې شرط کړې وو فَالْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ نود رب المال قول به قبول وی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ اسْتِحْقَاقَ الرِّبْحِ ځکه چې هغه د استحقاق نفع منکر دې وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ اګرچه د صحت مقاربت انکار کوی وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ الْقَوْلُ لِلْمُسْلَمِ إِلَيْهِ او د امام ابوحنیفه رح په نیز به د مسلم الیه قول قبول وی لِأَنَّهُ يَدَّعِي الصِّحَّةَ ځکه چې هغه د سلم د صحت دعوه کوی وَقَدِ اتَّفَقَا عَلَى عَقْدٍ وَاحِدٍ حالانکه دواړه په یو عقد باندې متفق دی فَكَانَا مُتَّفِقَيْنِ عَلَى الصِّحَّةِ ظَاهِرًا نو په ښکاره دواړه ددې په صحت باندې متفق شو.

**حل اللغة:** ① ینکر-انکارکوی-② الصحة-صحیح کیدل-③ ربح-نفع-④ یدعی-دعوی کوی

**تشریح:-** علامه مرغینانی رح فرمانی.که د متن مسئله برعکس شوه.یعنی مسلم الیه د میعاد دعوه اوکړله.او رب السلم انکار اوکړلو.نود صاحبینو رح په نیز به د رب السلم قول معتبر وی.اود امام ابوحنیفه رح په نیز به د مسلم الیه قول معتبر وی.

د صاحبینو رح دلیل دادې.چه رب السلم د یو داسې حق انکارکوی.کوم چې د مسلم الیه په رب السلم باندې دې.یعنی دمسلم فیه ادا کاوه لپاره میعاد کیدل د مسلم الیه حق دې.اوپه دې کې د مسلم الیه نفع هم ده.په دې طریقه چې مسلم الیه به په دې موده کې په راس المال باندې اخستل خرخول کوی.او ډیره ښه نفع به حاصله کړی.نو رب السلم چې د میعاد نه انکار اوکړلو.نود مسلم الیه د ذکرشوی حق او نفع نه ئې انکار اوکړلو.اګرچه

ددې په ضمن کې د بيع سلم صحيح کيدلو نه هم انکار اوشو.او مسلم اليه دخپل دغه حق او نفع دعوه کړې ده.او مسلم اليه يعنی مدعی سره چونکه بينه موجود نه دی.په دې وجه به د منکر يعنی د رب السلم قول معتبر وی.او ددې مثال داسې دې.لکه په عقدمضاربت کې رب المال مضارب ته اووئيل.چه ما ستا لپاره د نيمې نفعې شرط لګولې وو.علاوه د لس درهمو نه.يعنی په حاصل شوې نفع کې به خاص طور باندې لس درهم زما لپاره وی.او پاته نفع به د دواړو په مينځ کې نصف نصف وی.نو په دې صورت کې به د رب المال قول معتبر وی.خکه چې رب المال ددې زياتې نفع منکر دې.د کوم چې مضارب مستحق دې.يعنی رب المال چې کوم لس درهمه خان لپاره خاص کړی دی.مضارب وائی.چه زه په دې کې هم برابر شريك يم.او زماحق په دې کې هم ثابت دې.خو رب المال مضارب ددې حق انکار کوی.اګرچه د رب المال ددې انکار او ددې لس درهمو د استثناء په وجه عقد مضاربت فاسديږی.نو سره ددې چې د رب المال په قول سره په عقدمضاربت کې فساد لازميږی.خو چونکه دې خپل خان باندې د مضارب لپاره د زياتې نفع نه منکر دې.اود منکر قول دمدعی سره بينه نه کيدلو په صورت کې معتبر وی.خکه به په دې صورت کې د منکر يعنی د رب المال قول معتبر وی.

② د امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې.چه دعقدسلم په صورت کې رب السلم او مسلم اليه دواړه په يوعقد کې متفق دی.خکه چې سلم عقدواحد دې.او د سلم په شرائطوکې د هر يوشرط نه د انکار کاوه په وجه عقدسلم فاسديږی.دوهم عقد نه فاسديږی.نو په ذکرشوې مسئله کې د دواړو په عقدواحد باندې اتفاق اوشو.خو په صحت او فساد کې اختلاف دې.په دې طريقه چې مسلم اليه د اجل او ميعاد دعوه کولو سره د سلم د صحيح کيدلو مدعی دې.او رب السلم د ميعاد په انکار سره ددې د فاسد کاوه مدعی دې.او ظاهرحال په دې شاهد دې.چه دواړه د سلم په صحيح کيدلو باندې متفق وی.خکه چې رب السلم او مسلم اليه دواړه مسلمانان دی.اود مسلمان ظاهرحال ددې تقاضا کوی.چه دې د عقدفاسد نه خان بچ اوساتی.او عقد صحيح منعقد کړی.نود رب السلم مسلمان کيدلو نه بظاهره معلوميږی.چه دې هم د عقد صحيح مدعی دې.اودې د عقد صحيح مدعی هغه وخت کيدلې شی.چه ده د اجل اوميعاد اقرار کړې وی.نو ګويا رب السلم د صحت سلم اقرار اوکړو.نو ددې انکار نې کړې دې.اود يوځيز د اقرار نه روسته دده انکار مردود وی.په دې وجه د رب السلم د اړخه د ميعاد اقرار کاوه نه روسته د سلم صحيح کيدلو انکارکول به مردود او ناقابل قبول وی.او هرکله چې د رب السلم د ميعاد نه د انکار قول قبول نشو.نو مسلم اليه کوم چې د اجل او ميعاد مدعی دې.دده قول به قبول وی.دا تاسو داسې هم وئيلې شئ.چه رب السلم او مسلم اليه د عقدسلم منعقد کاوه اقدام کړې دې.او انسان چې کله په څه شئ باندې اقدام کوی.نو ددې د ټولو شرطونو التزام کوی.او ميعاد د بيع سلم په شرطونوکې يوشرط دې.نود رب السلم او مسلم اليه په عقدباندې اقدام کول د صحت سلم اقرار کول دی.خو کله چې رب السلم د ميعاد نه انکار اوکړلو.نوګويا د اقرار نه روسته نې انکارکړې دې.اود اقرار نه روسته انکار چونکه شرعاً مردود وی.خکه به د رب السلم د اجل او ميعاد نه انکار،معتبر او قبول نه وی.او هرکله چې د رب السلم د اجل نه د انکار قول معتبر نشو.نود مسلم اليه د اجل د دعوې قول به معتبر وی.

بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْمُضَارَبَةِ په خلاف د مسئلې د مضاربت لِأَنَّهُ لَيْسَ بِلَازِمٍ .او خکه چې مضاربت نه لازميږی فَلَا يُعْتَبَرُ الْإِخْتِلَافُ فِيهِ نو په دې کې به اختلاف معتبر نه وی فَبَقِيَ مُجَرَّدُ دَعْوَى اسْتِحْقَاقِ الرِّبْحِ او صرف د نفع د استحقاق دعوه پاته شوه أَمَّا السَّلَمُ باقې شو بيع سلم فَلَازِمٌ نو هغه يو عقدلازم دې فَصَارَ الْأَصْلُ نو قاعده كليه دا شوه أَنَّ مَنْ خَرَجَ كَلَامُهُ تَعَنُّتًا چې د چا کلام د سرکشۍ په طور اوختلو فَالْقَوْلُ لِصَاحِبِهِ بِالْإِتِّفَاقِ نو دده د انډيوالان قول به بالاتفاق معتبر وی وَإِنْ خَرَجَ خُصُومَةً اوکه دده کلام د خصومت په طور اوختلو وَوَقَعَ الْإِتِّفَاقُ عَلَى عَقْدٍ وَاحِدٍ او په يو عقد باندې اتفاق واقع شو فَالْقَوْلُ لِمُدَّعِي الصِّحَّةِ عِنْدَهُ نود امام صاحب ﷫ په نيز د صحت د مدعی قول به معتبر وی وَعِنْدَهُمَا لِلْمُنْكِرِ اود صاحبينو ﷭ په نيز دمنکر قول به معتبر وی وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ اګرچه هغه د صحت منکر وی.

حل اللغة: ① الاستحقاق-مستحق کيدل-② الربح-ګټه-③ الخصومة-جګړه-④ المنکر-انکاری



تشريح:- «بخلاف المضاربة.....الخ» سره د صاحبينو ﷭ د قياس خواب دې.حاصل د خواب دادې.چه عقد سلم په عقدمضاربت باندې قياس کول ټيك نه دی.خکه چې په دې دواړو کې ډير لوې توپير دې.① رومبې توپير خودا دې.چه په عقدمضاربت کې د اختلاف په صورت کې دواړه په عقدواحد باندې متفق پاتې نشو.خکه چې رب المال چاچه د لس درهمو د استثناء دعوه کړې وه.دا د مضاربت د فاسدولو مدعی دې.او مضارب چاچه ددې انکار کړې وو.دې د مضاربت د صحيح کيدلو مدعی دې. او عقدمضاربت چې کله صحيح شی.نودې ته عقد شرکت وئيلې شی.او کله چې فاسد شی.نو دې ته اجاره وئيلې شی.ددې په خلاف عقدسلم دې.چه په دې کې د اختلاف باوجود رب السلم او مسلم اليه دواړه په يوعقد باندې متفق پاتې کيږی.صرف دومره خبره ده.چه د اجل او ميعاد منکر د فاسدسلم مدعی وی.اود اجل اوميعاد قائل د صحيح سلم مدعی وی.حاصل داچه بيع سلم فاسد شی.بياهم سلم پاته کيږی.بل عقد نه جوړيږی.او مضاربت چې فاسد شی.نو مضاربت نه پاتې کيږی.بلکه اجاره جوړيږی.② دوهم فرق دادې. چې عقدمضاربت عقدلازم نه دې.خکه چې د عقدمضاربت نه روسته به مضارب او رب المال دواړوکې هر يو ته د فسخ کاوه اختيار وی.او عقدسلم لازم وی.چه د رب السلم او مسلم اليه دواړو کې د يوپه فسخ کاوه سره عقدسلم نه فسخ کيږی.بلکه د دواړو رضامندی ضروری ده.نو هرکله چې د عقدمضاربت او عقدسلم په مينځ کې دومره ډير توپير دې.نو عقدسلم په عقدمضاربت باندې قياس کول څنګه ټيك دی.پاتې شوه داخبره چې دعقد مضاربت په صورت کې د رب المال قول ولې قبلولې شی.نو ددې خواب دادې.چه هرکله عقدمضاربت غيرلازم دې.نود رب المال او مضارب په اختلاف سره عقدمرتفع کيږی.او هرکله چې عقدمرتفع شو.نو ددوی اختلاف به هم معتبر نه وی.بلکه صرف د رب المال په مال کې د مضارب د نفع د حقدار کيدلو دعوه پاته شوه.يعنی مضارب ددې خبرې مدعی دی. چې د رب المال په مال کې زما هم نفع ده.او رب المال ددې منکر دې.او مدعی يعنی مضارب سره چونکه بينه (ګواهان) موجود نه دی.په دې وجه د منکر يعنی د رب المال قول به معتبر وی.او عقدسلم چونکه لازم دې.په دې وجه د رب السلم او مسلم اليه په اختلاف سره عقدسلم نه مرتفع کيږی.او هرکله چې عقدسلم مرتفع نشو.نو رب السلم چاچه د ميعاد نه انکار کړې دې.ګويا دې د سلم د فساد مدعی دې.اود فساد سلم مدعی چونکه متعنت او سرکش وی.خکه چې د ميعاد نه انکارکولوکې دده هيڅ فائده نشته.خکه به رب السلم متعنت وی.اود متعنت قول چونکه مردود وی.او دده د انډيوالان قول مقبول وی.خکه به د رب السلم قول مردود اود مسلم اليه قول به مقبول او معتبر وی.

② صاحب دهدايه ﷫ فرمائی.چه په دې پوره تقرير سره يوه قاعده کليه مستنبط شوه.او هغه داکه ديو کس کلام په تعنت او سرکشئ باندې مشتمل وی.په دې طريقه چې دداسې شئ انکار کوی.کوم چې دده لپاره نافع او ګټور دې.نو په اتفاق د احنافو ﷭ به دده قول مردود او دده د انډيوالان کلام به معتبر وی.اوکه د يوکس کلام په خصوصی طور باندې وی.په دې طريقه چې دخپل خان لپاره د نقصان ده شئ منکر وی.او دواړه په يوعقد باندې متفق وی.نود امام ابوحنيفه ﷫ په نيز چې کوم کس د عقد د صحت مدعی دې.د هغه قول به قبول وی.اود صاحبينو ﷭ په نيز د منکر قول قبول دې.اګرچه دې د صحت منکر وی.

## په کپړوکښې د بيع سلم حکم

قَالَ ( قدوری ﷫ ) فرمايي وَيَجُوزُ السَّلَمُ فِي الثِّيَابِ چې په کپړوکې سلم جائز دې إِذَا بَيَّنَ طُولًا وَعَرْضًا وَرُقْعَةً کله چې ددې اوږدوالې، پلن والې، پيړوالې او نرې والې بيان کړی لِأَنَّهُ أَسْلَمَ فِي مَعْلُومٍ خکه چې ده په داسې معلوم شئ کې بيع سلم کړې دې مَقْدُورِ التَّسْلِيمِ کوم سپارل چې دده په قدرت کې دی عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه چې موږ ذکر کړل.

حل اللغة: ① الثياب-جمع ثوب، جامه-② طول-اوږدوالې-③ عرض-پلنوالې-④ مقدور-قابل قدرت

تشريح:- ابو الحسين قدوری ﷫ فرمائی.که د وړئ کپړې اوږدوالې،پلن والې،پيړوالې او نرې والې نې بيان کړې وی.نو ددې بيع سلم جائز دې.خکه چې په دې صورت کې کپړه معلوميږی.او ددې سپارل ممکن دی.او وړاندې تيرشوی دی.چه د شئ معلوم، مقدورالتسليم بيع سلم جائز وی.خکه به ددې کپړې بيع سلم هم جائز وی.

وَإِنْ كَانَ ثَوْبُ حَرِيْرٍ اوكه د ريښمو كپړه وى لَابُدَّ مِنْ بَيَانِ وَزْنِهِ أَيْضًا نو ددې وزن بيانول هم ضروري دى لِأَنَّهُ مَقْصُوْدٌ فِيْهِ ځكه چې په ريښموكې وزن هم مقصود وى.

حل اللغة: ① حرير - ريښم - ② الجواهر - جمع جوهر، ملغلره - ③ الخرز - غمي - ④ التفاوت - فرق

تشريح:- اوكه كپړه د ريښمو وى. نو صرف اوږدوالې او پلنوالې بيانول كافي نه دى. بلكه ددې وزن بيانول هم ضروري دى. ځكه چې د ريښمو په كپړه كې د اوږدوالى او پلنوالى سره ددې وزن هم مقصود وى. هم دا وجه ده. چه د وزن په كموالى يا زياتولى سره د ريښمو د كپړې قيمت مختلف كيږى. نو هركله چې وزن هم مقصود دې. نو ددې بيانول به هم ضروري وى. د حضرت امام مالك، امام شافعي اود امام احمد ﷺ په نيز وزن بيانول شرط نه دى.

**په ياقوت او غموكښې د بيع سلم حكم**

وَلَا يَجُوْزُ السَّلَمُ فِي الْجَوَاهِرِ وَلَا فِي الْخَرَزِ او په ياقوت او غمو (موتيانو) كې بيع سلم جائز نه دې لِأَنَّ آحَادَهَا مُتَفَاوِتَةٌ تَفَاوُتًا فَاحِشًا ځكه چې ددې په افرادوكې ډير زيات تفاوت وى.

تشريح:- مسئله: په ياقوت او غمى چونكه عددى دى. اود ماليت په اعتبار سره ددې په افرادوكې ډيرزيات تفاوت وى. ځكه ددې بيع سلم جائز نه دې.

وَفِي صِغَارِ اللُّؤْلُؤِ الَّتِي تُبَاعُ وَزْنًا يَجُوْزُ السَّلَمُ او واړه واړه غمى كوم چې په وزن سره خرڅيږى. (په هغې كې) بيع سلم جائز دې لِأَنَّهُ مِمَّا يُعْلَمُ بِالْوَزْنِ ځكه چې دا په وزن سره معلوميږى.

حل اللغة: ① صغار - جمع د صغير، وړوكې - ② اللؤلؤ - ملغلرې - ③ اللبن - كچه ښخته - ④ الاجر - پخه ښخته ⑤ الملبن - قالب\سانچه - ⑥ متقارب - يوبل ته نزدې - ⑦ عددي - چه شمارلې شى --

تشريح:- او واړه واړه غمى كوم چې په وزن سره خرڅيږى. مثلاً كوم چې په رانجو او دوائى كې اچولې شى. ددې بيع سلم په وزن سره جائز دې. ځكه چې دا په وزن سره معلوميږى. اود شئ معلوم سلم چونكه جائز وى. ځكه به ددې بيع سلم هم جائز وى.

**په پخو او كچه خښتوكښې د بيع سلم شرط اوحكم**

وَلَا بَأْسَ بِالسَّلَمِ فِي اللَّبِنِ وَالْآجُرِّ او په كچه او پخو خښتو كې بيع سلم كولوكې هيڅ باك نشته إِذَا سُمِّيَ مِلْبَنًا مَعْلُوْمًا كله چې يوه معلومه سوانچه بيان كړې شى لِأَنَّهُ عَدَدِيٌّ مُتَقَارِبٌ ځكه چې خښته عددى متقارب ده لَاسِيَّمَا إِذَا سُمِّيَ الْمِلْبَنُ خصوصاً كله چې سوانچه بيان كړې شى.

تشريح:- مسئله: خښتې كه كچه وى. او كه پخې وى. كه ددې سوانچه متعين شوې وى. نو ددې بيع سلم جائز ده. ځكه چې خښتې د عدديات متقاربه څخې دى. يعنى په ماليت كې ددې افراد متفاوت نه وى. اود عددى متقارب بيع سلم چونكه جائز وى. ځكه به د خښتو بيع سلم هم جائز وى. په دې شرط چې ددې سوانچه متعين كړې شوې وى.

**د بيع سلم قاعده كليه**

قَالَ فرمايي وَكُلُّ مَا أَمْكَنَ ضَبْطُ صِفَتِهِ وَمَعْرِفَةُ مِقْدَارِهِ اوهر يو داسې شئ چې ددې صفت معلومول او ددې مقدار پيژندل ممكن وى جَازَ السَّلَمُ فِيْهِ نود هغې بيع سلم جائز ده لِأَنَّهُ لَا يُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځكه چې هغه مفضى الى المنازعه نه دې وَمَا لَا يَنْضَبِطُ صِفَتُهُ اود كوم شئ چې صفت نه معلوميږى وَلَا يُعْرَفُ مِقْدَارُهُ او نه ددې مقدار معلوميدې شى لَا يَجُوْزُ السَّلَمُ فِيْهِ نو په هغې كې بيع سلم جائز نه ده لِأَنَّهُ دَيْنٌ ځكه چې دا مال دين دې وَبِدُوْنِ الْوَصْفِ يَبْقَى مَجْهُوْلًا اود وصف نه بغير به داسې مجهول وى جَهَالَةً تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ كوم چه، مفضى الى المنازعه، وى.

حل اللغة: ① امكن - ممكن وى - ② الضبط - حفاظت - ③ المنازعة - جګړه - ④ تفضى - مفضى كيږى



تشريح:- ابو الحسين قدورى ﷺ په دې عبارت كې يوه قاعده بيانوى. ددې حاصل دادې. چه د كوم شئ صفت معلومول او ددې مقدار پيژندل ممكن وى. د هغې بيع سلم به هم جائز وى. لكه مكيلات، موزونات، مزروعات او عدديات متقاربه.

دليل دادې. چه د داسې شئ په سپارلوكې دڅه جګړې امكان نشته. اوهركله چې د جګړې امكان نشته. نو بيع سلم به هم جائز وى. اود كوم شئ صفت معلومول او ددې مقدار پيژندل چې ممكن نه وى. نود هغې بيع سلم جائز نه دې. ددې دليل دادې. چه مسلم فيه دين وى. يعنى د مسلم اليه په ذمه واجب وى. او دين يعنى كوم شئ چې د مسلم اليه په ذمه واجب وى. هغه د وصف بيانولو نه بغير مجهول او غيرمعلوم پاتې وى. اومجهول هم داسې چه، مفضى الى المنازعه،، وى. او داسې جهالت چې د انجام په اعتبار سره جګړه پيدا كړى. مفسد د بيع وى. په دې وجه كه د مسلم فيه وصف بيان شوې نه وى. او ددې مقدار معلوم نه وى. نو ددې بيع سلم به جائز نه وى.

وَلَا بَأْسَ بِالسَّلَمِ فِي طَسْتٍ أَوْ قُمْقُمَةٍ أَوْ خُفَّيْنِ أَوْ نَحْوِ ذَلِكَ او خانك (لګن) يا قمقمه (بلبونه) يا د څرمنې موزې يا ددې پشان څيزونوكې سلم كاوه كې هيڅ باك نشته إِذَا كَانَ يُعْرَفُ په دې شرط چې دا معلوم وى. لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِ السَّلَمِ ځكه چې د سلم شرطونه جمع دى وَإِنْ كَانَ لَا يُعْرَفُ اوكه معلوم نه وى فَلَا خَيْرَ فِيْهِ نو ددې په سلم كې خير نشته لِأَنَّهُ دَيْنٌ مَجْهُوْلٌ ځكه چې دا مجهول دين ده.

حل اللغة: ① طست - خانك - ② قمقمة - بلبب - ③ الخف - موزه - ④ يعرف - پيژندې شى

تشريح:- ابو الحسين قدورى ﷺ فرمائى. چه خانك، بلبونه، (طشت،) د څرمنې موزې او ددې پشان نور شيان مثلاً كټورې (يعنى جام) ګلاس، د اوسپنې اود پيتلو د لوخو بيع سلم جائز ده. په دې شرط چې د اوصافو بيانولو سره دا شيان معلوم شى. ځكه چې په دې صورت كې د سلم واړه شرطونه جمع كيږى. اوكه يوڅيز د اوصاف بيانولو باوجود معلوم نشى. نود هغې بيع سلم به جائز نه وى. ځكه چې په دې صورت كې مسلم فيه دين مجهول دې. اود مجهول كيدو په وجه به جګړه پيداكيږى. اوكومه جهالت چې جګړه پيدا كوى. هغه بيع فاسدوى. په دې وجه د عدم شناخت په صورت كې به بيع سلم فاسد او ناجائز وى.

**د استصناع حكم**

قَالَ وَإِنِ اسْتَصْنَعَ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ بِغَيْرِ أَجَلٍ فرمائى. اوكه په ذكر شوى څيزونوكې كوم شئ د ميعاد نه بغير جوړ كړې شو جَازَ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً جائز دى. لِلْإِجْمَاعِ الثَّابِتِ بِالتَّعَامُلِ د هغه اجماع په وجه كوم چې د خلګو په تعامل (اوعادت) سره ثابت ده وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوْزُ اود قياس مطابق جائز نه ده لِأَنَّهُ بَيْعُ الْمَعْدُوْمِ ځكه چې دا د معدوم بيع ده وَالصَّحِيْحُ أَنَّهُ يَجُوْزُ بَيْعًا او صحيح داده. چه استصناع د بيع په طور جائز ده لَا عِدَةً د وعدې په طور نه ده.

حل اللغة: ① الاستصناع - جوړول - ② مفروغ - جوړشوې - ③ المعدوم - غيرموجود - ④ اجل - نيټه

تشريح:- د استصناع صورت دادې. چه يوكس د يوكار كاريګر ته اووائى. چه فلانې شئ په دې اوصافو سره دومره اوږد او پلن په دومره روپو جوړ كړه. او پوره رقم يا څه رقم كاريګرتـه وركړى. او هيڅ ميعاد ذكرنكړى. زموږ په نيز دې ته بيانه (پيشكى) وركول وائى. نودا استصناع استحساناً جائز ده. خو قياساً جائز نه ده. وجه د استحسان عملى اجماع ده. ځكه چې د رسول الله ﷺ د زمانې نه واخله ترنن ورځ پورې بلانكير د خلګو په دې باندې عمل راروان دې. اود خلګو اجماع يو شرعى حجت دې. لكه څنګه چې د رسول الله ﷺ د قول «لا تجتمع أمتي على ضلالة» او «ما رآه المسلمون حسناً فهو عند الله حسن» الفاظ حديث په دې باندې ښكاره شهادت دې. او ددې نه علاوه دا چې پخپله رسول الله ﷺ يوه ګټمه او ممبر بيانه وركړې او جوړ كړى دى. نود رسول الله ﷺ بيانه وركول او جوړولو نه روسته د استصناع په جواز كې څه شبه پاتـه كيږى. اووجه د قياس كوم چې د امام زفر او امام شافعي ﷺ مذهب هم دې. چه د استصناع په صورت كې كوم شئ خرڅولې شى. هغه معدوم وى. اود معدوم بيع ناجائز ده. لكه چې د حديث «نهى عن بيع ما ليس عند الإنسان ورخص في السلم» نه ښكاره معلوميږى. يعنى د معدوم د بيع نه د الله رسول ﷺ منع فرمائيلى

ده.البته د سلم اجازت نې ورکړې دې.خو استصناع سلم نه دې.ځکه چې د سلم لپاره اجل اومیعاد ضروري دې.او د استصناع لپاره دا ضروري نه دی.نو هرکله چې استصناع بیع سلم نه دې.او د معدوم د بیع نه منع شوې ده.نواستصناع به هم ناجائز وي.

اوس سوال دادې.چه د استصناع د جواز په صورت کې آیا استصناع بیع ده.یا صرف وعده ده.نو په دې اره کې صحیح قول دادې.چه استصناع بیع ده.هم دا د عامةُ المشائخ مذهب دې.او بعض حضرات دا وائي.چه استصناع صرف یوه وعده ده.عقد به هغه منعقد کیږي.چه کله شئ تیار شي.او یویل سره لین دین اوشي.هم دا وجه ده.چه په کاریګر او جوړونکي دواړو کې د هریو لپاره خیار ثابت دې.یعنی کاریګر ته دنه جوړولو اختیار دې.یعنی که کاریګر نه جوړول اوغواړي.نودې به نشي مجبوروولې.او جوړونکي ته دا اختیار دې.چه کاریګر کوم شئ جوړ کړي.او راوړي.دې دا قبول نکړي.نو دې به په قبلولو نشي مجبوره کولې.او هم دغه ډول اختیار په وعده کې کیږي.په بیع کې نه کیږي.نو معلومه شوه.چه استصناع صرف وعده ده.او بیع نه ده.

د عامةُ المشائخ دلیل دادې.چه امام محمد ﷫ په مبسوط کې استصناع ته بیع وئیلی ده.او په دې کې نې خیار رؤیت ثابت کړې دې.او په دې کې نې قیاس او استحسان جاري کړي دې.او خیار رؤیت او قیاس او استحسان په بیع کې جاري کیږي.په وعده کې نه جاري کیږي.ځکه به استصناع بیع وي.وعده به نه وي.

وَالْمَعْدُوْمُ قَدْ يُعْتَبَرُ مَوْجُوْدًا حُكْمًا او معدوم حکماً موجود شمارلې شي اوَالْمَعْقُوْدُ عَلَيْهِ الْعَيْنُ دُوْنَ الْعَمَلِ او معقودعلیه عین شئ دې.عمل نه دې حَتّٰى لَوْ جَاءَ بِهِ مَفْرُوْغًا ترديې که کاریګر داسې جوړ کړې شوې شئ راوړو لَا مِنْ صَنْعَتِهِ کوم چې دده جوړ کړې شوې نه دې أَوْ مِنْ صَنْعَتِهِ قَبْلَ الْعَقْدِ یا د عقد نه وړاندې جوړ کړې شوې دې فَأَخَذَهُ نو جوړونکي هغه واخستلو جَازَ نو جائز دی وَلَا يَتَعَيَّنُ اِلَّا بِالْاِخْتِيَارِ او هغه شئ به متعین نه وي.خود جوړونکي په خوښئ سره حَتّٰى لَوْ بَاعَهُ الصَّانِعُ قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ الْمُسْتَصْنِعُ ترديې که کاریګر جوړونکي ته د خودلو نه وړاندې هغه خرڅ کړو جَازَ نو جائز دی وَهٰذَا كُلُّهُ هُوَ الصَّحِيْحُ اودا واړه تفصیل صحیح دې.

تشریح:- په دې عبارت سره د یوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه استصناع څنګه بیع کیدلې شي.په داسې حال کې چې معدوم د بیع جوړولو صلاحیت نه لري؟

ځواب *ددې ځواب دادې.چه کله کله د شریعت په حکم کې معدوم موجود شمارلې کیږي.لکه مثلاً د ذبح په وخت په هیره د تسمیه پریخودونکي تسمیه معدوم ده.خود نسیان د عذر په وجه موجود شمارلې شوې ده.او د متروک التسمیه ناسیاً د خوراك اجازت ورکړې شوې دې.اولکه څنګه چې د مستحاضه طهارت معدوم دې.خود لمونځ د جواز دعذر په وجه دا موجود شمارکړې شوې دې.دغه ډول کاریګر چې کوم شئ جوړوي.بلاشبه دا معدوم دې.خود خلګو د تعامل په وجه دا موجود شمارکړې شوې دې.اوهرکله چې په استصناع کې مبیع معدوم موجود شمارکړې شو.نود مبیع معدوم کیدلو اعتراض نه واقع کیږي.

«والمعقود علیه العین.........الخ» سره علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.چه معقود علیه یعنی مبیع هغه شئ دې.کوم چې کاریګر جوړ کړې دې.د کاریګر عمل معقود علیه نه دې.هم دا وجه ده.که کاریګر داسې شئ جوړ راوړلو.کوم چې ده پخپله نه دې جوړ کړې.بلکه کوم بل کاریګر جوړ کړې دې.یاده داسې شئ راوړلو کوم چې ده د عقداستصناع نه وړاندې جوړ کړې وو.او جوړونکي دا خوښ کړو.او جوړنې کړلو.نوجائز دی.ددې نه معلومه شوه.چه معقود علیه د کاریګر عمل نه دې.بلکه (معقودعلیه) هغه عین مصنوع دې.کوم چې کاریګر د عقدنه وړاندې جوړ کړې دې.یانې په بل کاریګر جوړ کړې دې.که معقودعلیه د کاریګر عمل وو.نو په ذکرشوی دواړو صورتونو کې به استصناع صحیح نه وه.ځکه چې په یوصورت کې دده د کاریګرئ عمل اونه موندې شو.بلکه د بل کاریګر عمل اوموندې شو.او په یوصورت کې دده عمل اوموندې شو.خود عقداستصناع نه وړاندې اوموندې شو.او ښکاره ده.چه د عقداستصناع نه وړاندې عمل معقودعلیه نشي کیدلې.



علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.چه کوم شئ جوړ کړې شوې دې.هغه به هغه وخت متعین وي.چه کله جوړونکي دا خوښ کړي.ترديې که کاریګر جوړونکي ته د خودلو نه وړاندې دا خرڅ کړو.نوجائز دې.ځکه چې هرکله تراوسه پورې دا شئ متعین شوې نه دې.نو مبیع به هم نه وي.علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.چه دا څه ذکرشو.یعنی استصناع وعده نه ده.بلکه بیع ده.اودا بیع چې په کوم شئ واقع شوه.هغه د کاریګر عمل نه دې.بلکه جوړشوې شئ دې.اود جوړونکي د خوښ والي نه وړاندې متعین شوې نه دې.دا واړه صحیح دي.

## په استصناع کښې د خیار حکم

قَالَ فرمائي وَهُوَ بِالْخِيَارِ او جوړونکي ته اختیار دې إِذَا رَآهُ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ که غواړي.دا دې واخلي وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ او که غواړي.نو ترك دې کړي لِأَنَّهُ اشْتَرٰى شَيْئًا لَمْ يَرَهُ ځکه چې ده داسې شئ اخستې دې.کوم نې چې نه دې کتلې وَلَا خِيَارَ لِلصَّانِعِ (۱) او کاریګر ته هیڅ اختیار نشته كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمَبْسُوْطِ هم داسې په مبسوط کې ذکر دی وَهُوَ الْأَصَحُّ اوهم دا اصح دې لِأَنَّهُ بَاعَ مَا لَمْ يَرَهُ ځکه چې ده داسې شئ خرڅ کړې دې.کوم نې چې نه دې کتلې وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ اودامام ابوحنیفه ﷫ نه یو روایت دادې أَنَّ لَهُ الْخِيَارَ أَيْضًا چې کاریګر ته هم اختیار وي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ تَسْلِيْمُ الْمَعْقُوْدِ عَلَيْهِ إِلَّا بِضَرَرٍ ځکه چې د ضرر نه بغیر معقودعلیه سپارل ممکن نه دی وَهُوَ قَطْعُ الصَّرْمِ وَغَيْرِهِ او هغه ضرر د څرمې پ.ې کول وغیره دی.

حل اللغة: ① -صانع-کاریګر-② الخیار-اختیار-③ الاخذ-اخستل-④ الترك-پریخودل

تشریح:- فاضل مصنف ﷫ فرمائي.چې د استصناع په صورت کې چې کله شئ جوړشي.او تیارشي.او جوړونکي دا اوګوري.نو جوړونکي ته اختیار دې.که غواړي.دا دې واخلي.او که غواړي.نو نه دې اخلي.ځکه چې استصناع د صحیح قول مطابق بیع ده.او جوړونکي مشتري دې.او وړاندې تیرشوی دی.چه د کتلونه بغیر د اخستلو په صورت کې مشتري ته خیار رؤیت حاصلیږي.په دې وجه دلته کې هم مشتري یعنی جوړونکي ته به خیار رؤیت حاصل وي.اود مبسوط د بیان مطابق کاریګر ته به خیار رؤیت حاصل نه وي.ځکه چې کاریګر بائع وي.او بائع ته خیار رؤیت حاصل نه وي.ځکه به کاریګر ته د خیار رؤیت لاندې د معامله ختمولو اختیار نه وي.

د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ نه یو روایت دادې.چه کاریګر ته هم اختیار حاصل دې.که غواړي.نودا کار دې اوکړي.که غواړي نو نه دې کوي.ددې روایت دلیل دادې.چه چې دکاریګر لپاره د ضررنه بغیر معقودعلیه سپارل ممکن نه دی.ځکه چې موزې یا پیزار یاد بل څه شئ جوړولو لپاره ددې پرې کول ضروري وي.او یوځیز پرې کول او ټکړې کول ښکاره خبره ده.چه د کاریګر نقصان دې.نود خپل ځان نه ضرر او نقصان لرې کاوه لپاره که کاریګر معامله ترك کړي.نو ترك کولې شي.

وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ اود امام ابویوسف ﷫ نه روایت دې أَنَّهُ لَا خِيَارَ لَهُمَا چې د جوړونکي او کاریګر دواړو لپاره اختیار نشته أَمَّا الصَّانِعُ فَلِمَا ذَكَرْنَا بهرحال کاریګر په هغه وجه کوم چې موږ ذکر کړې ده وَأَمَّا الْمُسْتَصْنِعُ فَلِأَنَّ فِيْ إِثْبَاتِ الْخِيَارِ لَهُ إِضْرَارًا بِالصَّانِعِ او بهرحال جوړونکي نو ځکه چې دده لپاره په خیار ثابتولو کې به کاریګر ته ضرر رسول وي لِأَنَّهُ رُبَّمَا لَا يَشْتَرِيْهِ غَيْرُهُ بِمِثْلِهِ وَلَا يَجُوْزُ فِيْمَا لَا تَعَامُلَ فِيْهِ لِلنَّاسِ كَالثِّيَابِ لِعَدَمِ الْمُجَوِّزِ اود کومو ځیزونو په جوړولوکې چې د خلګو تعامل نشته.لکه کپړې،نود عدم مجوز په وجه په دې کې استصناع جائز نه ده وَفِيْمَا فِيْهِ تَعَامُلٌ إِنَّمَا يَجُوْزُ او هغه ځیزونوکې په کومو کې چې د خلګو تعامل دې.استصناع به هغه وخت جائز وي إِذَا أَمْكَنَ إِعْلَامُهُ بِالْوَصْفِ کله چې په وصف سره خبرول ممکن وي لِيُمْكِنَ التَّسْلِيْمُ چې سپار ممکن شي.

حل اللغة: ① المستصنع-جوړ شوې-② الثیاب-جمع د ثوب،جامه-③ اعلام-خبرداري-④ یمکن-ممکن ده

(۱) القول الراجح هو هذا قول ظاهر الروایة من عدم الخیار کذا في العنایة (۲۴۴/۶) نقلاً عن القول الراجح (۸۱/۲)_

تشریح:- د حضرت امام ابویوسف ﷬ نه یو روایت دادې چه د کاریګر او جوړونکي دواړو لپاره به خیار رؤیت حاصل نه وي. د کاریګر لپاره خو د تیرشوي دلیل په وجه، چه کاریګر بائع دې. اود بائع لپاره خیار رؤیت ثابت نه وي. خکه به کاریګر لپاره خیار رؤیت حاصل نه وي. اود جوړونکي لپاره به خیار رؤیت خکه ثابت نه وي. چه ده ته په خیار ور کاوه کې د کاریګر نقصان دې په دې طریقه چې کاریګر خرمن وغیره خپل مال خکه کټ کړو. چه ده ته ددې د بدل ملاوېدلو پوره توقع وه. خوکه جوړونکي ته خیار ورکړې شو. او ده د خپل خیار لاندې داخیز وانخستلو نو په دې کې به د کاریګر نقصان وي. خکه چې بل کس به داخیز د دومره روپو په عوض نه اخلي. بلکه دا هم ممکن ده، چه دا شی خرڅ هم نشي. مثلاً واعظ ممبر جوړ کړو. او بیا ئې د خپل اختیار لاندې دا وانخستلو نو یو عام کس به د ارتیا نه کیدلو په وجه دا ممبر نه اخلي. او په دې کې سراسر د کاریګر نقصان دې. نود کاریګر د نقصان په لحاظ سره به جوړونکي ته هم اختیار نشي ورکولی.

علامه مرغیناني ﷬ د یوقاعدې په طور فرماني چه په کومو څیزونو کې د بیانه ور کاوه او جوړولوکې د خلګو تعامل نشته د داسې څیزونو بیانه ورکول او جوړول، یعنی استصناع به جائز نه وي. مثلاً د کپړې کاریګر ته بیانه ورکول او کپړه جوړول جائز نه دي. خکه چې په دې کې مجوز یعنی د خلګو تعامل او نه موندې شو. او په کومو څیزونو کې چې په بیانه ور کاوه او جوړولوکې د خلګو تعامل موندلې شي په هغې کې استصناع یعنی بیانه ورکول او جوړول په هغه وخت جائز وي چه په اوصافو بیانولو سره هم ددې شي په اړه کې معلومات اوشي. چه هم ددې مطابق ئې جوړ کړي. او وې سپاري.

**د بغیر اجل .. د قید فائده**

| |
|---|
| وَإِنِ اسْتَصْنَعَ بِغَيْرِ أَجَلٍ اود امام محمد ﷬ ) اوفرمائیل، بغیر اجل لِأَنَّهُ لَوْ ضَرَبَ الْأَجَلَ فِيمَا فِيهِ تَعَامُلٌ خکه چې ده په داسې شي کې میعاد اولګولو په کومو کې چې د خلګو تعامل دي يَصِيرُ سَلَمًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ (١) نود امام ابوحنیفه ﷬ په نیز به دا سلم وي خِلَافًا لَهُمَا د صاحبینو ﷬ اختلاف دي وَلَوْ ضَرَبَهُ فِيمَا لَا تَعَامُلَ فِيهِ اوکه په داسې شي کې ئې میعاد بیان کړو په کوم کې چې د خلګو تعامل نشته يَصِيرُ سَلَمًا بِالِاتِّفَاقِ نودا به بالاتفاق سلم وي لَهُمَا د صاحبینو ﷬ دلیل دادې أَنَّ اللَّفْظَ حَقِيقَةٌ لِلِاسْتِصْنَاعِ چې د استصناع لفظ پخپله حقیقي معنی کې د استصناع لپاره دې فَيُحَافَظُ عَلَى قَضِيَّتِهِ نود لفظ په مقتضاء باندې به ددې محافظت کولای شي وَيُحْمَلُ الْأَجَلُ عَلَى التَّعْجِيلِ او میعاد به په جلتۍ باندې محمول کولې شي. |

حل اللغة: ① الاجل-نیټه-② یحمل-حمل کولې شي-③ ضرب-بیان کړو-④ یصیر-ګرځي

تشریح:- علامه مرغیناني ﷬ د متن په عبارت «وإن استصنع شيئاً من ذلك بغير أجل» کې د «بغير أجل» فائده ذکر کوي یعنی په متن کې ئې «بغير أجل» خکه اووئیل چه په کومو څیزونو کې بیانه ور کاوه او جوړولوکې د خلګو تعامل دې. که په دې کې اجل او میعاد بیان کړې شو نود حضرت امام ابوحنیفه ﷬ په نیز دې ته بیع سلم وائي. او ددې د جواز لپاره د سلم د ټولو شرطونو موجود کیدل ضروري دي هم دا قول د امام مالك، امام شافعي اود امام احمد ﷬ دې. خود صاحبینو ﷬ په نیز به دا استصناع وي سلم به نه وي حاصل دا چې دلته دوې (دوه) قسمونه دي. ① که داسې شي ئې جوړ کړو چه ددې په جوړولوکې د خلګو تعامل جاري دې ② دوهم داسې شي ئې جوړ کړو چه ددې د جوړولو په خلګو کې تعامل نه دې. نوکه داسې شي ئې جوړ کړو چه ددې په جوړولوکې د خلګو تعامل جاري دې او یو میعاد ئې مقرر کړو مثلاً دانې اووئیل چه ما دومره قدرې دام (قیمت) تاله درکړو چه ته په دې اندازه موزې ددې صفت جوړې کړې چه دوې (دوه) میاشتو پورې ئې تیارې کړې. نود امام ابوحنیفه ﷬ په نیز به دا عقدسلم وي چه د دوې (دوه) میاشتو موده بیانول د جلتۍ لپاره نه وي بلکه د مسلم فیه ادا

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷬ كذا في ردالمحتار (٢٢٧/١٤) والكفاية (٢٤٤/٦) نقلاً من القول الراجح (٨١/٢).



کولو مهلت وي. خود صاحبینو ﷬ په نیز به دا استصناع وي. اوکه د داسې شي په جوړولوکې ئې میعاد مقرر کړو. چه ددې د جوړولو تعامل جاري نه دې. نودا عقد به بالاتفاق بیع سلم وي. نو معلومه شوه. که میعاد ذکر نکړې شو. نودا به بالاتفاق استصناع وي.

په مختلف فیه مسئله کې د صاحبینو ﷬ دلیل دادې. چه د استصناع او جوړولو لفظ چونکه د استصناع لپاره حقیقت دې. په دې وجه ددې لفظ تقاضا داده. چه دا سلم نه وي. نود مقتضائې لفظ ساتنه کاوه په لحاظ به دا لفظ په استصناع باندې محمول کولې شي. اود میعاد ذکر به په جلتۍ باندې محمول کولې شي. یعنی د مودې بیانولو څخه به غرض دا وي. چه زر (جلتۍ) سره جوړ کړي. او کله چې موده په دې غرض سره ذکر کړې شي. چه په جلتۍ سره ئې جوړ کړي. نودا بالاتفاق معتبر نه وي. نو هر کله چې موړ موده په دې معنی باندې محمول کړله. نو لفظ د استصناع به پخپله حقیقي معنی باندې پاتې وي. نو ثابته شوه. چه د کومو څیزونو په جوړولوکې د خلګو تعامل وي. او ددې لپاره څه میعاد هم ذکرشوې وي. نودا به استصناع وي. سلم به نه وي.

| |
|---|
| بِخِلَافِ په خلاف د داسې شي مَا لَا تَعَامُلَ فِيهِ د کوم د جوړولو چې تعامل نشته. لِأَنَّهُ اسْتِصْنَاعٌ فَاسِدٌ خکه چې دا استصناع فاسد ده فَيُحْمَلُ عَلَى السَّلَمِ الصَّحِيحِ نودا به په صحیح سلم باندې محمول کولای شي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ اود امام ابوحنیفه ﷬ دلیل دادې أَنَّهُ دَيْنٌ چې کوم شي ئې جوړ کړې دې. هغه دین دې. يَحْتَمِلُ السَّلَمَ چې د سلم احتمال هم لري وَجَوَازُ السَّلَمِ بِإِجْمَاعٍ اود سلم جواز په داسې اجماع سره ثابت دې لَا شُبْهَةَ فِيهِ چې په هغې کې هیڅ شبه نشته وَفِي تَعَامُلِهِمُ الِاسْتِصْنَاعَ نَوْعُ شُبْهَةٍ اود خلګو په استصناع باندې تعامل کولوکې یو ډول شبه ده فَكَانَ الْحَمْلُ عَلَى السَّلَمِ أَوْلَى وَاللَّهُ أَعْلَمُ نو په سلم باندې محمول کول اولی (راجح) دی. والله تعالی اعلم. |

تشریح:- په خلاف د کومو څیزونو په جوړولوکې چې د خلګو تعامل نه وي. او ددې لپاره څه میعاد ذکر شوې وي. نود تعامل نه کیدلو په وجه به دا استصناع فاسد وي. او هر کله چې استصناع فاسد شوه. نود میعاد په قرینه سره به دا په صحیح سلم باندې محمول کولې شي. چه د عاقل بالغ تصرف د امکان په اندازه صحیح شي.

دامام ابوحنیفه ﷬ دلیل دادې. چه کوم شي ئې بیانه ورکړې او جوړ کړې دې. هغه دین دې. یعنی د کاریګر په ذمه ثابت دې. نو په دې کې چې څنګه د استصناع احتمال دې. دغه ډول د سلم هم احتمال دې. خود استصناع دجواز دلیل صرف د خلګو تعامل دې. او تعامل د یو کمتر درجې دلیل دې. خکه چې د امام زفر او امام شافعي ﷬ د استصناع د جواز نه د انکار کاوه په وجه د خلګو په استصناع باندې په تعامل کولوکې یو ډول شبه ده. اود سلم جواز په داسې اجماع سره ثابت دې. چه په دې کې هیڅ شبه نشته. لکه چې د باب په پیل کې تیرشوی دی. چه د سلم جواز په آیت مداینت او حدیث «ورخص في السلم» دواړو نه ثابت دې. نو سلم د کوم جواز چې قطعي دې. لفظ استصناع به په دې باندې محمول کول غوره او زیات مناسب وي

## مسائل منثوره

ژباړه (د تیروشوو بابونو نه پاتې شوې) مختلفې مسئلې.

تشریح:- په تیرو شوو بابونوکې چې د کومو مسئلو ذکر پاتې شوې وو. علامه مرغیناني ﷬ ددې عنوان لاندې دغه ټولې مسئلې راجمع کړې دی.

**د شلونکو.. معلم اوغیر معلم.. ځناورو د بیع حکم**

| |
|---|
| قَالَ (قدوري ﷬) فرمایي وَيَجُوزُ بَيْعُ الْكَلْبِ وَالْفَهْدِ وَالسِّبَاعِ چې د سپو، پړانګ، او شلونکو ځناورو بیع جائز ده الْمُعَلَّمُ وَغَيْرُ الْمُعَلَّمِ فِي ذَلِكَ سَوَاءٌ په دې حکم کې معلم (پوهه ورکړې شوې) او غیر معلم دواړه برابر دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ |

لَا يَجُوْزُ بَيْعُ الْكَلْبِ الْعَقُوْرِ(١) اود امام ابویوسف ﷫ نه روایت دې چه د کټ کونکي ( ماتونکي) سپي بیع ناجائز ده لِأَنَّهُ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهٖ ځکه چې دا قابل انتفاع نه دې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا يَجُوْزُ بَيْعُ الْكَلْبِ او امام شافعي ﷫ فرمائي. چه د سپي بیع جائز نه ده لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {إِنَّ مِنَ السُّحْتِ مَهْرَ الْبَغِيِّ وَثَمَنَ الْكَلْبِ}(٢) چې د زناکارۍ مزدوری اود سپي قیمت حرام دې وَلِأَنَّهٗ نَجِسُ الْعَيْنِ اوځکه چې سپې نجس العین دې وَالنَّجَاسَةُ تُشْعِرُ بِهَوَانِ الْمَحَلِّ او نجاست د محل د ذلیل والی خبر ورکوی وَجَوَازُ الْبَيْعِ يُشْعِرُ بِإِعْزَازِهٖ اود بیع جائز کیدل ددې د اعزاز (عزت) خبر ورکوی فَكَانَ مُنْتَفِيًا په دې وجه به بیع منتفي وی.

**حل اللغة:** ① **الكلب**-سپې-② **الفهد**-پړانګ-③ **السباع**-درنده-④ **سواء**-برابر ⑤ **العقور**-لیوني-⑥ **البغي**-زنا-⑦ **السحت**-حرام-⑧ **هوان**-سپکوالې ⑨ **يشعر**-اګاهي-⑩ **الاعزاز**-عزت-⑪ **النجاسة**-مرداری-⑫ **منتفي**-غیرموجود

**تشریح:**- شیخ ابوالحسن قدوری ﷫ فرمائي. چه د سپي، پړانګ اود شلونکی( ماتونکی) ځناورو مثلاً د شیر، زمری (او پړانګ) وغیره بیع جائز ده. د صاحب قدوری ﷫ د مطلق عبارت نه ښکاره ده. چه په دې حکم کې معلم او غیرمعلم دواړه برابر دی. یعنی سپې، پړانګ یا شلونکی ځناور که معلم وی. نوهم بیع جائز ده. اوکه غیرمعلم وی. نو بیاهم جائز ده. د معلم یعنی د خودنې ورکړې شوې یا تعلیم ورکړې شوی سپي یا شلونکی ځناور علامت دادې چه کله دا ښکار نیولو لپاره پریخودلې شی. نودې منډه کړی. اوچه کله دې منع کړې شی. نو اودریږی. او کله چې دې په ښکار باندې چور اوکړی. نود مالك لپاره ئې اونیسی. او کینی. او په خوړلو سره خیانت نه کوی. د حضرت امام ابویوسف ﷫ نه یو روایت دادې. چه د کلب عقور بیع جائز نه ده. کلب عقور هغه کوځه ډب ( اواره) او لیونی سپي ته وائي. کوم چې تعلیم نه قبلوی. یعنی د تعلیم او خودنې ور کاوه باوجود نه پوهیږی. د کلب عقور د بیع په عدم جواز باندې دلیل دادی. چه کلب عقور بالکل غیرمنتفع به دې. اود غیر منقطع به بیع جائز نه وی. ځکه به د کلب عقور بیع جائز نه وی. او امام شافعي ﷫ فرمائي. چه مطلق د سپي بیع جائز نه ده.

دلیل ① داحدیث دې. ﴿عن أبي هريرة ﷺ أن النبي ﷺ قال ان مهر البغي وثمن الكلب وكسب الحجام من السحت﴾ (ابن حبان از فتح القدیر) یعنی محبوب خلائق، سردار اولین وآخرین ﷺ فرمائیلی دی. چه د زناکارۍ مزدوری، د سپي ثمن، اود ښکر لګونکی ګټه حرام ده. او ② دوهم په صحیحینوکي د ابومسعودانصاری ﷺ داحدیث دې. چه ﴿أن رسول الله ﷺ نهى عن ثمن الكلب ومهر البغي وحلوان الكاهن﴾ یعنی رسول الله ﷺ د سپي ثمن، د زانیه مزدوری، اود کاهن ( پالګر) د اجرت نه منع فرمائیلې ده. او ③ دریم په صحیح مسلم کې د جابر ﷺ حدیث دې. ﴿أن النبي ﷺ زجر عن ثمن الكلب﴾ رسول الله ﷺ د سپي د ثمن نه منع فرمائیلې ده. ددې حدیثونو نه معلومیږی. چه د سپي ثمن حرام دې. اود ثمن حصول په بیع سره کیږی. نو هرکله چې ثمن حرام دې. نو ددې د حاصلولو سبب یعنی بیع به هم حرام وی. ④ څلورم دلیل دادې. چه سپې نجس العین دې. ځکه چې دده جوته نجس ده. او جوته ځکه نجس ده. چه لاړې ( د کوم په وجه چې جوته کیږی) دغوښې نه پیدا کیږی. اود سپي غوښه نجس او حرام ده. نوهرکله چې د سپي غوښه نجس ده. نو معلومه شوه چه سپې نجس العین دې. او چونکه د نجس العین بیع جائز نه وی. ځکه به د سپي بیع ناجائز وی. اود نجس العین بیع ځکه ناجائز وی. چه د نجاست تقاضا داده. چه په کوم محل کې نجاست دې. چه دا ذلیل او حقیر وی. اود بیع جائز کیدل ددې خبرې تقاضا کوی. چه دا معزز او محترم وی. اودا ناممکن ده. چه یوځیز دې حقیر او

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف ﷫ كذا في الدرالمختار(٢٣٩\٤) ورد المحتار(٢٣٩\٤) وتبيين الحقائق (١٢٤\٤) نقلاً [عن] القول الراجح (٨٣\٢)-

(٢) [م]ن حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه ابن حبان في صحيحه والدارقطني في سننه (٧٢/٣) رقم ٢٧٣)_



ذلیل هم وی. او معزز او محترم دې هم وی. نود سپي د نجاست عین په لحاظ سره ددې د حقارت او ذلت په وجه ددې بیع ناجائز ګرځولې شوې ده.

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې {أَنَّهٗ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنْ بَيْعِ الْكَلْبِ چې نبی کریم ﷺ د سپي د بیع نه منع فرمائیلې ده إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ سوا د ښکاری سپي أَوْ مَاشِيَةٍ}(١) یا د ساتنه کونکی سپي نه وَلِأَنَّهٗ مُنْتَفَعٌ بِهٖ حِرَاسَةً وَاصْطِيَادًا اوځکه چې د سپي نه د ساتنه اود ښکار نفع اخستې شی فَكَانَ مَالًا نودا به مال وی يَجُوْزُ بَيْعُهٗ اوددې بیع به جائز وی بِخِلَافِ الْهَوَامِّ الْمُؤْذِيَةِ په خلاف د ضرری چینجو( حشرات الارض) لِأَنَّهٗ لَا يُنْتَفَعُ بِهَا ځکه چې ددې نه نفع نشی اخستې

**حل اللغة:** ① **الصيد**-ښکار-② **الحراسة**-څوکی-③ **الهوام**-حشرات الارض-④ **الموذية**-ضرری ⑤ **القلع**-بیخی ختمیدل-⑥ **الاقتناء**-دسپو ساتل-⑦ **الابتداء**-شروع-⑧ **التناول**-خوراك كول

**تشریح:**- زموږ دلیل د رسول الله ﷺ حدیث دې. ﴿أنه ﷺ نهى عن بيع الكلب إلا كلب صيد او ماشية﴾ یعنی،، رسول الله ﷺ د سپي د بیع نه منع فرمائیلې ده. سواء د ښکاری سپي یاد ساتنه کونکی سپي د بیع نه،، یعنی د ښکاری یا د رمې یا د کور ساتنه کونکی سپي بیع جائز ده. خو دلته کې یو اعتراض دې، هغه داچه دلیل د دعوې نه خاص دې. ځکه دعوه خودا ده. چه د مطلق سپي بیع جائز ده. او حدیث صرف د کلب صید اود کلب ماشیه د بیع د جواز فائده ورکوی. ددې خواب دادې. چه دلته کې د حدیث بیانولو مقصد د خصم یعنی د امام شافعي ﷫ مذهب باطلول دی. ځکه چې دې د مطلق سپي د بیع د عدم جواز دعوه کوی. حالانکه په حدیث سره د ښکاری اود ساتنه کونکی سپي د بیع جواز ثابت دې. اود دعوې په اثبات یعنی د مطلق سپي د بیع په جواز باندې زموږ د اړخه د عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ دا حدیث دلیل دې. ﴿أنه ﷺ قضى في كلب قتله رجل بأربعين درهما﴾ یعنی یوسړی یو سپې مړکړلو. نود الله رسول ﷺ د څلویښت درهمو تاوان فیصله اوکړله. په دې روایت کې سپې مطلق دې. او په هلاکونکی باندې تاوان واجب کړې شوې دې. اوتاوان واجبول د سپي متقوم یعنی په قیمتی کیدلو باندې دلیل دې. اود مال متقوم بیع جائز وی. ځکه به د سپي بیع جائز وی.

خو په دې باندې اشکال دې. چه امام طحاوی ﷫ په شرح آثارکې دا حدیث په ﴿فكلب صيد﴾ الفاظو سره ذکر کړې دې. په دې صورت کې د ښکاری سپي متقوم کیدل ثابتیږی. دمطلق سپي متقوم کیدل نه ثابتیږی. ښه خواب دادې. چه په حدیث ﴿نهى عن بيع الكلب إلا كلب صيد او ماشية﴾ سره د ټولو سپو د بیع جواز ثابتیږی. ځکه چې هر یو سپې د ځناورو د رمې د ساتنه صلاحیت لری. په دې طریقه چې د غل او زمری وغیره په کتلو سره واړه سپي غاپي. او ددوی دا غپیدل ددې ساتنه کول دی. نو لفظ ماشیه لاندې واړه سپي داخلیږی. ② دوهم ځواب دادې. چه د ﴿كلب صيد﴾ اود ﴿كلب ماشية﴾ د بیع جواز خو په حدیث سره صراحةً او عبارت النص نه ثابت دې. او ددې نه علاوه نور سپي ددې سره دلالة النص په طریقه لاحق دی. دغه ډول د ټولو سپو بیع جائز کیدل ثابتیږی.

زموږ د اړخه عقلی دلیل دادې. چه مطلق سپې قابل انتفاع دې. ددې نه د ساتنه کار هم اخستلې شی. اود ښکار کارهم اخستلې شی. اوکوم شئ چې منتفع به وی. هغه مال وی. ځکه چې مال د سړی نه علاوه دهغه شئ نوم دې. کوم چې شرعاً د سړی د نفع لپاره پیدا شوی وی. نو معلومه شوه. چه مطلق سپې مال دې. اود مال بیع جائز ده. نود سپي بیع به هم جائز وی. په خلاف د مار، لړم، وغیره موذی ځناورو، چه ددې بیع جائز نه ده. ځکه چې حشرات الارض غیرمنتفع بها دی. بلکه یو ډول مضر او ضرر رسان دی. اوکوم شئ چې ناقابل انتفاع وی. هغه مال نه وی. اوکوم

(١) غربه الزيلعي ﷫ بهذا اللفظ ثم أخرج عن أبي هريرة ﷺ قال نهى رسول الله ﷺ عن ثمن الكلب إلا كلب الصيد أخرجه الترمذي في البيوع باب ٤٩ رقم ١٢٧٩ وأبوداود في البيوع باب ٦٢ رقم ٣٤٧٩ وابن ماجه في التجارات باب ٩ رقم ٢١٦١ والنسائي؟؟ في البيوع رقم ٤٣٥٣ والدارقطني في سننه (١٠/٣) رقم ١١٠١٢)_

شي چي مال نه وي. د هغې بيع هم جائز نه وي.په دې وجه د حشراتو د زمکې اوضرري ځيزونو (لکه مارلړم وغيره) بيع جائز نه ده.

| |
|---|
| وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى الِابْتِدَاءِ او حديث په ابتداء د اسلام باندې محمول دې قلعالهم عن الاقتناء چې د سپو ساتلو نه دوی بالکل جدا کړې شي وَلَا نُسَلِّمُ نَجَاسَةَ الْعَيْنِ اود سپی نجس العين کيدل نه منو وَلَوْ سُلِّمَ فَيَحْرُمُ التَّنَاوُلُ اوکه اومنلې شي.نو ددې خوراك حرام دې دُونَ الْبَيْعِ ددې بيع حرام نه ده. |

ⓘ د حضرت امام شافعي رحمه الله د اړخه د پيش کړې حديث «ان من السحت مهر البغي وثمن الكلب» خواب دادې.چه حديث په ابتداء د اسلام باندې محمول دې.يعنی په ابتداء د اسلام کي د سپی د بيع د حرمت حکم وو.خو روسته داحکم منسوخ شوې دې.لکه څنګه چې حديث «ان النبي ﷺ رخص في ثمن كلب الصيد» په دې باندې شاهد دې.يعنی رسول الله ﷺ د ښکاری سپی د ثمن اجازت ورکړې دې.ددې تفصيل دادې.چه خلګو به سپی ساتل.او ددې سره به نې ډير زيات مينه اومحبت ساتلو.او ددې په ذريعه به نې ماشومانو او غريبانانو ته تکليفونه رسول.رسول الله ﷺ دوی د ساتلو نه منع کړل.نو په خلګو باندې دا ډيره ګرانه شوه.نو رسول الله ﷺ د خلګو د زړونو نه ددې مينه اومحبت اوشکلو لپاره ددې د قتلولو حکم اوفرمائيلو.او ددې د بيع نه نې منع اوفرمائيله.اوکه سپی په لوخي کې خوله اووهله.نودغه لوخي اووه ځله بلکه اته ځله پورې د اينځلو اود شوره کولوحکم نې اوفرمائيلو.بياچه کله د خلګو د زړونو نه ددې محبت اووتلو.نو ددې اخستل خرڅول جائز اوګرځولی شو.ددې تفصيل نه معلوميږي.چه په ابتداء کې د سپی اخستل خرڅول ممنوع وو.بيا داحکم منسوخ شو.اود سپی بيع جائز اوګرځولې شوه.

ⓘ دامام شافعي رحمه الله د عقلي دليل په خواب کي علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د سپی نجس العين کيدل موږ نه منو.ځکه چې په حالت د اختيارکې د هبه او وصيت په ذريعه بل څوك د سپی مالك کول جائز دی.حالانکه د نجس العين شي مالك کول جائز نه دی.نو ددې نه معلومه شوه.چه سپې نجس العين نه دې.اوکه د سپی نجس العين کيدل اومنلې شي.نو ددې خوراك حرام دې.خرڅول نې حرام نه دی.لکه څنګه چې خاشنړه (غوشيان) او سوتي نجس العين دی.خو زموږ په نيزددې خرڅول جائز دی.اګرچه د امام شافعي رحمه الله په نيزجائز نه دی.امام شافعي رحمه الله په پانخانه (په ډك اودس ماتی) باندې قياس کوی.يعنی لکه څنګه چې د انسان د پانخانه بيع جائز نه ده.دغه ډول د سوتو وغيره بيع هم جائز نه ده.

ⓘ زموږ دليل دادې.چه سوتي او خاشنړه د خلګو په نيز بلانکير مال منتفع به دې.اود مال منتفع به بيع جائز وی.ځکه د سوتو او خاشنړو بيع جائز ده.او پياتې شوه پانخانه (غټ اودس ماتې)،نودا خو پخپله منتفع به نه دې.ځکه ددې بيع جائز نه ده.البته که پانخانه په خاوروکي ملاؤ شوه.نود خاورې تابع به ددې بيع هم جائز وی.

### د شراب اود خنزير د بيع حکم

| |
|---|
| وَقَالَ وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ اود شراب اود خنزير بيع جائز نه ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه رسول الله ﷺ د شرابو په اره کي فرمائيلی دی اِنَّ الَّذِي حَرَّمَ شُرْبَهَا چې چا ددې څښل حرام کړی دی حَرَّمَ بَيْعَهَا وَأَكْلَ ثَمَنِهَا (۱) هغه ددې خرڅول،او ددې د ثمن خوړل هم حرام کړی دی وَلِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ فِي حَقِّنَا او ځکه چې دا زموږ په حق کي مال نه دې وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ دا ذکر کړی دی. |

تشريح:- مسئله: د شرابو او خنزير بيع جائز نه ده.د شرابو په حرمت کې اصل د الله تعالى دا قول دې. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ او،، رجس،، حرام او نجس ته وائي.او په حرام ځيزکي چونکه تصرف جائز نه وی.ځکه به په شرابوکي د بيع وغيره په ذريعه تصرف کول جائز نه دی.① اود خنزير په حرمت کي اصل دا آيت دې. ﴿إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ﴾ نوچونکه

(۱) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم في المساقاة رقم (٦٨)_



خنزير هم حرام دې.او په حرام ځيزکي تصرف کول ناجائز دی.ځکه به د خنزير بيع هم ناجائز وی.د شرابو د بيع په حرمت باندې دعلامه مرغيناني رحمه الله پيش شوې حديث هم شاهد دې.② دوهم دليل دادې.چه شراب او خنزير د مسلمان په حق کي مال نه دې.لکه څنګه چې د،،باب البيع الفاسد،، په پيل کي تفصيل تيرشوې دې.او کوم شي چې مال نه وی.د هغې بيع جائز نه وی.په دې وجه د شراب او خنزير بيع جائز نه ده.

### د بيوع کښي د ذميانو حکم

| |
|---|
| قَالَ فرمايي وَأَهْلُ الذِّمَّةِ فِي الْبِيَاعَاتِ كَالْمُسْلِمِينَ او ذميان خلګ په بيوع کې د مسلمانانو پشان دی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه رسول الله ﷺ په دې حديث کي فرمائيلی دی فِي ذَلِكَ الْحَدِيثِ فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ لَهُمْ مَا لِلْمُسْلِمِينَ چې کافرانو ته ددې خبرې خبر ورکړه.چه څه د مسلمانانو لپاره دی.هغه ددوی لپاره هم دی وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُسْلِمِينَ (۱) او څه چې په مسلمان لازم دی.هغه به په دوی هم لازم وی وَلِأَنَّهُمْ مُكَلَّفُونَ مُحْتَاجُونَ كَالْمُسْلِمِينَ او ځکه چې ذميان خلګ د مسلمانانو پشان مکلف محتاج دی. |

تشريح:- ذمی: هغه کافر ته وائی.کوم چې په داراسلام کي د مسلمانانو ماتحت اوسيږي.او جزيه وغيره ورکوی.ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائي.چه ذمی خلګ په اخستلو،خرڅولو او په نورو معاملاتوکي د مسلمانانو پشان دی.يعنی کوم شيان چې مسلمانانو لپاره حلال دی.هغه به ددوی لپاره هم حلال وی.او کوم شيان چې د مسلمانانو لپاره حرام دی.هغه به ددوی لپاره هم حرام وی.مثلاً سود،د څاروی بيع د څاروی په عوض په قرضو،اود يو درهم بيع د دوې (دوه) درهمو په عوض په نغدو،او قرضو وغيره وغيره، دمسلمانانو لپاره حرام دی.نود ذميانو لپاره به هم حرام وی.ددې① دليل د معاذ رضي الله عنه حديث دې.يعنی کله چې سردار دوعالم ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه د يمن ګورنر (والي) جوړ کړلو.او وې ليګلو.اوده ته نې ډير هدايات اوفرمائيل.نو په دې کي يو هدايت دا وو.چه معاذ! د يمن کافران خبر کړه.چه ددوی لپاره هم هغه شي حلال دې.کوم چې د مسلمانانو لپاره حلال دې.او په دوی باندې هغه شي حرام دی.کوم چې په مسلمانانو باندې حرام دې.② دوهم دليل دادې.چه ذمی خلګ د مسلمانانو پشان د معاملاتو مکلف دی.اود خپلو ځانونو په پاتـه ساتلوکي د مسلمانانو پشان د خوراك څښاك،کپړو اود کورهم محتاج دی.اودا شيان ښکاره ده.چه د اسبابو په محنت کولو سره به حاصليږي.او په دې سببونوکي يو سبب بيع هم ده.په دې وجه ددوی په حق کي به بيع هم هغه شان مشروع وی.لکه څنګه چې د مسلمانانو په حق کي مشروع ده.

| |
|---|
| قَالَ إِلَّا فِي الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ خَاصَّةً خو خاص کر په شراب او خنزيرکي فَإِنَّ عَقْدَهُمْ عَلَى الْخَمْرِ ځکه چې ددوی په شرابو باندې عقد کول داسې دی كَعَقْدِ الْمُسْلِمِ عَلَى الْعَصِيرِ لکه د مسلمانانو د انګورو په شيره باندې عقد کول.ر وَعَقْدُهُمْ عَلَى الْخِنْزِيرِ او ددوی په خنزير باندې عقدکول داسې دی كَعَقْدِ الْمُسْلِمِ عَلَى الشَّاةِ لکه د مسلمانانو په وزه باندې عقد کول لِأَنَّهَا أَمْوَالٌ فِي اعْتِقَادِهِمْ ځکه چې د ذميانو په اعتقاد کي شراب او خنزير مال دې وَنَحْنُ أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَعْتَقِدُونَ موږ ته حکم راکړې شوې دې.چه موږ ذميان او ددوی معتقدات پريږدو دَلَّ عَلَيْهِ قَوْلُ عُمَرَ او.هم په دې باندې د حضرت عمر رضي الله عنه قول دلالت کوی وَلُّوهُمْ بَيْعَهَا ذميان د شرابو او خنزير بيع کاوه ته پريږدئ وَخُذُوا الْعُشْرَ مِنْ أَثْمَانِهَا (۲) او ددوی د ثمن نه عشر واخلئ. |

حل اللغة: ① الخمر-شراب-② العصير-رس\جوس-③ شاة-چيلی-④ الترک-پريخودل

تشريح:- د دوې (دوه) ځيزونو استثناء ده.① شراب ② خنزير يعنی دا دوې (دوه) شيان خاص طور د ذميانو لپاره

(۱) قال الزيلعي رحمه الله لم أعرف الحديث الذي أشار إليه المنصف ولم يتقدم في هذا المعنى إلا حديث معاذ رضي الله عنه وهو في كتاب الزكاة وحديث بريدة رضي الله عنه وهو في كتاب السير وليس فيهما ذلك (نصب الراية ٤/١٠٦)_

(٣٥٧) أخرجه عبدالرزاق في مصنفه في البيوع قاله الزيلعي رحمه الله (نصب الراية ٤/١٠٧)_

حلال دی.او ددې اخستل خرڅول هم حلال دی.خود مسلمانانو لپاره حلال نه دی.په شرابو باندې د ذمیانو عقد کول داسې دی.لکه د مسلمانانو د انګورو په شیره ( ګهل او بوره) باندې عقد کول.او په خنزیر باندې ددوی عقد کول داسې دی.لکه په وزه باندې د مسلمان عقد کول.

ﷺ دلیل دادې.چه د عقد امان لاندې شراب او خنزیر ددوی په اعتقاد کې مال متقوم دې.او رسول اللهﷺ مونږ ته ددې خبرې حکم راکړې دې.چه مونږ ذمیان ددوی په اعتقاد باندې پریږدو.نو هرکله چې ذمیان ددوی په اعتقاد باندې د پریښولو حکم شوې دې.او ددوی په اعتقاد کې شراب او خنزیر مال متقوم دې.اود مال متقوم اخستل خرڅول چونکه جائز دی.ځکه به ذمیانو لپاره د شرابو اوخنزیر اخستل خرڅول هم جائز وی.هم په دې باندې د فاروق أعظم عمربن الخطابؓ قول دلالت کوی.سوید بن غفله وائی.چه خلیفة المسلمین عمربن خطابؓ تشریف راوړلو.او خپل عمال (صدقات وغیره راټولونکی) ئې راجمع کړل.چه تاسو خلګ په جزیه کې مردار، خنزیر او شراب اخلئ؛حضرت بلالؓ اوونیل.آو دا خلګ داسې کوی.حضرت عمرؓ اوفرمائیل.داسې مه کوئ.البته تاسو ددې خیزونو مالکان ددې د خرڅولو والیان جوړ کړئ.بیا ددوی نه ( په جزیه کې ) ددې ثمن اخلئ.ددې واقعې نه هم معلومیږی.چه د ذمیانو لپاره د شراب او خنزیر اخستل خرڅول جائز دی.

### د پنځه سوه روپو ضامن کیدلو په شرط دده په حکم خپل غلام په زر درهمه خرڅولو حکم

📖 قَالَ فرمايي وَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ اوکه یوکس بل ته اوونیل بِعْ عَبْدَكَ مِنْ فُلَانٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ چې ته خپل غلام په فلانی باندې د یو زر درهمو په عوض خرڅ کړه عَلَى أَنِّي ضَامِنٌ لَكَ خَمْسَمِائَةٍ مِنَ الثَّمَنِ سِوَى الْأَلْفِ په دې شرط چې زه ستا لپاره د یو زر درهمو نه علاوه د پنځه سوه درهمو ضامن یم فَفَعَلَهُ نو بائع داسې اوکړل وَجَائِزٌ نودا جائز دی وَيَأْخُذُ الْأَلْفَ مِنَ الْمُشْتَرِي وَالْخَمْسَمِائَةِ مِنَ الضَّامِنِ او بائع به یو زر درهم د مشتری نه او پنځه سوه درهم به د ضامن نه اخلی وَإِنْ لَمْ يَقُلْ مِنَ الثَّمَنِ اوکه دهٔ د،،من الثمن،، لفظ اونه ونیلو جَازَ الْبَيْعُ بِأَلْفٍ نود زر درهمو په عوض به بیع جائز وی وَلَا شَيْءَ عَلَى الضَّمِينِ او په ضامن به هیڅ واجب نه وی وَأَصْلُهُ أَنَّ الزِّيَادَةَ فِي الثَّمَنِ وَالْمُثَمَّنِ جَائِزٌ عِنْدَنَا او قاعده کلیه داده.چه زمونږ په نیز په ثمن او مثمن باندې زیاتوالې جائز دې وَتَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ اودا زیاتوالې اصل عقد سره لاحق کیږی.

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه یوکس د بل کس نه غواړی.چه دې خپل غلام د زر روپو په عوض خرڅ کړی.خو بائع د پنځلس سوه روپو نه په کم خرڅولو لپاره تیار نه دې.او مشتری د زر روپو نه زیات باندې اخستلو باندې نه راضی کیږی.نو دریم سړی د غلام مالك ته اوونیل.چه ته خپل غلام فلانی ته د زر روپو په عوض خرڅ کړه.په دې شرط چې زه به د زر روپو نه علاوه په ثمن کې د پنځه سوه روپو ضامن یم.نودا جائز دی.او بائع به زر روپۍ د مشتری نه اخلی.او پنځه سوه روپۍ به د ضامن نه اخلی.اوکه ضامن د،،من الثمن،، لفظ او نه ونیل.نود زر روپو په عوض به بیع جائز شی.او په ضامن به څه هم واجب نه وی.په دې دواړو صورتونوکې وجه د توپیر هغه قاعده کلیه ده.کومه چې وړاندې تیره شوې ده.چه زمونږ په نیز په ثمن باندې زیاتوالې کول.او په مبیع باندې زیاتوالې کول جائز دی.اودا زیاتوالې اصل عقد سره یوځائې کیږی.یعنی که په ثمن کې زیاتوالې اوکړی.اوکه په مبیع کې زیاتوالې اوکړی.که مشتری زیاتوالې اوکړی.اوکه بائع زیاتوالې اوکړی.یاڅوك دریم کس زیاتوالې اوکړی.واړه جائز دی.اودا زیاتوالې داسې ګڼړلې شی.ګویا اصل عقدهم په دې واقع شوې دې.

خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ د امام زفر او امام شافعی ﷺ اختلاف دې لِأَنَّهُ تَغْيِيرٌ لِلْعَقْدِ مِنْ وَصْفٍ مَشْرُوعٍ ځکه چې داسې کول عقد د یو مشروع وصف نه دوهم مشروع وصف اړخ ته متغیر کول دی إِلَى وَصْفٍ مَشْرُوعٍ وَهُوَ كَوْنُهُ عَدْلًا او هغه د عقد برابر، أَوْ خَاسِرًا یا نقصان ده، أَوْ رَابِحًا یا نفع مند کیدل دی ثُمَّ قَدْ لَا يَسْتَفِيدُ الْمُشْتَرِي بِهَا شَيْئًا بیا کله مشتری ته په دې تغیر کاوه کې هیڅ نه حاصلیږی بِأَنْ زَادَ فِي الثَّمَنِ په دې طریقه چې مشتری په ثمن کې څه زیاتی کړل وَهُوَ يُسَاوِي الْمَبِيعَ بِدُونِهَا په داسې حال کې چې ثمن د زیاتوالی نه بغیر د مبیع برابر دې فَيَصِحُّ اشْتِرَاطُهَا عَلَى الْأَجْنَبِيِّ نو په اجنبی باندې



د زیاتوالی شرط کول صحیح دی كَبَدَلِ الْخُلْعِ لکه ځنګه چې د خلع عوض دې. لَكِنْ مِنْ شَرْطِهَا الْمُقَابَلَةُ تَسْمِيَةً وَصُورَةً خود زیاتوالی شرط دادې چه د تسمیه او صورت په اعتبار سره مقابله وی فَإِذَا قَالَ مِنَ الثَّمَنِ نو کله ئې چه،، من الثمن،، اوونیل وُجِدَ شَرْطُهَا نو ددې شرط اوموندې شو فَيَصِحُّ نو زیاتوالې به صحیح وی إِذَا لَمْ يَقُلْ او کله ئې چه،، من الثمن،، اونه ونیل لَمْ يُوجَدْ نو شرط اونه موندې شو فَلَمْ يَصِحَّ نو زیاتوالې به هم صحیح نه وی.

**حل اللغة:** ① یتغیر-بدلوی-② مشروع-جائز-③ یساوی-برابریږی-④ العدل-برابری

**تشریح:**- په ذکرشوې مسئله کې د امام زفر او امام شافعی ﷺ مذهب دا دې چې دا زیاتوالې اصل عقد سره نه یوځائې کیږی.

ﷺ زمونږ دلیل دادې.چه په ثمن یا مبیع کې زیاتوالې کول.عقد د یو وصف مشروع نه بل وصف مشروع اړخ ته متغیر کوی.ځکه چې د عقد درې صفتونه دی.① عدل؛ یعنی ثمن د مبیع د قیمت برابر وی.② خاسر: یعنی ثمن د مبیع د قیمت نه کم وی.③ رابح: یعنی ثمن د مبیع د قیمت نه زیات وی.او عقد په دې درې واړه صفتونو سره مشروع دې.نو که مشتری یو شی په سل روپۍ واخستلو.حالانکه بائع ته په دې کې تاوان دې.نودا عقد خاسر دې.خوچه کله مشتری په ثمن کې زیاتوالې اوکړو.نودا به عقد عدل وی.یا به رابح وی.نو معلومه شوه.چه په زیاتوالې کولو سره عقد د یومشرع وصف نه بل مشروع وصف اړخ ته متغیر کیږی.او دغه ډول تغیر چونکه جائز دې.ځکه به د ثمن یا مبیع زیاتوالې اصل عقد سره ملاوول هم جائز وی.

ﷺ خو دلته کې دا سوال دې.چه په ذکرشوې مسئله کې د بائع لپاره د پنځه سوه روپو زیاتوالې د اجنبی (د غیر) اړخه صحیح کیدل پکار نه وو.ځکه چې داغیر کس ددې پنځه سوه روپو په عوض د بائع نه هیڅ هم نه حاصلوی.بلکه چې څه حاصل شو.مشتری ته حاصل شو.دې اجنبی کس ته هیڅ حاصل نشو.ددې ځواب دادې.چې د زیاتوالی کونکی لپاره د هیڅ فائدې حاصلول شرط نه دی.مثلاً مشتری په ثمن کې څه اضافه اوکړله.حالانکه د زیاتوالی نه بغیر ثمن د مبیع د قیمت برابر وو.نومشتری ددې زیاتوالی په عوض د بائع نه هیڅ شی نه دې حاصل کړې.نو معلومه شوه.چه د زیاتوالی کونکی لپاره د زیاتوالی په عوض د څه شی حاصلول شرط نه دی.او هرکله چې د زیاتوالی په عوض د څه شی حاصلول شرط نه دی.نو په اجنبی سړی باندې د پنځه سوه روپو زیاتوالی شرط لګول به هم صحیح وی.اودا داسې ده.لکه بدل خلع.ځکه چې ښځې ته د بدل خلع په عوض هیڅ شی نه حاصلیږی.اود ښځې نه علاوه په اجنبی باندې د بدل خلع شرط لګول جائز دی.نو هم دغه ډول په مشتری باندې به د ضمان شرط لګول هم جائز وی.البته د زیاتوالی شرط دادې.چه تسمیةً او صورةً مقابله وی.تسمیةً مقابله داده.چه زیاتوالې کونکی د،،من الثمن،، تلفظ او تکلم اوکړی.او صورةً مقابله داده.چه کوم زیاتوالې ذکرشوې دې.هغه دمبیع په مقابله کې وی.نوهرکله چې اجنبی یعنی په ثمن کې زیاتوالې کونکې لفظ،، من الثمن،، اوونیل.نود زیاتوالی شرط یعنی مقابله اوموندې شوه.او هرکله چې د زیاتوالی شرط اوموندې شو.نو زیاتوالې کول به هم صحیح وی.اوکه لفظ،، من الثمن،، ئې اونه ونیل.نو شرط اونه موندې شو.او هرکله چې شرط اونه موندې شو.نو زیاتوالې کول به هم صحیح نه وی.او هرکله چې زیاتوالې کول صحیح نشو.نودا زیاتوالې به په ضامن باندې واجب هم نه وی.

### د اخستې وینځې قبضه کولو نه بغیر ددې د نکاح کولوحکم

📖 قَالَ فرمايي وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً او که یو کس یوه وینځه واخستله وَلَمْ يَقْبِضْهَا او په دې ئې قبضه اونکړله حَتَّى زَوَّجَهَا تردې چې ددې نکاح ئې اوکړله فَوَطِئَهَا الزَّوْجُ او میړه ددې سره وطی اوکړله فَالنِّكَاحُ جَائِزٌ نودا نکاح جائز ده لِوُجُودِ سَبَبِ الْوِلَايَةِ، وَهُوَ الْمِلْكُ فِي الرَّقَبَةِ عَلَى الْكَمَالِ ځکه چې د ولایت سبب یعنی په پوره طور د رقبه مالك کیدل اوموندې شو وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ او په میړه په مهر لازم وی وَهَذَا قَبْضٌ اودا نکاح کول اود میړه وطی کول قبضه ده. لِأَنَّ وَطْءَ الزَّوْجِ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې د میړه وطی کول د مشتری د اړخه قدرت ورکاوه سره حاصل شوی دی فَصَارَ

فِعْلُهُ كَفِعْلِهٖ نود. ميره فعل داسې دي.لکه د مشترى فعل.اِنْ لَمْ يَطَأْهَا او که ميره ددې سره وطى اونکړله فَلَيْسَ بِقَبْضٍ نو صرف نکاح کول به قبضه نه وى.

حل اللغة: ① جارية-وينځه-② الزوج-خاوند-③ الرقبة-څټ، يعنى غلامى-④ التسقيط-ساقطول

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوکس يوه وينځه واخستله.خو په وينځه ئې قبضه اونکړه.اود قبضه کاوه نه وړاندې مشترى ددې وينځې يو بل سړى سره نکاح اوکړله.او ميره ددې سره وطى اوکړله.نوداً نکاح جائز ده.او په ميره باندې مهرلازم دې.اود ميره وينځې سره وطى کول به د مشترى قبضه شمارلې شى.خود امام مالك،امام شافعى او امام احمد ﷫ په نيز د ميره وطى کول،د مشترى قبضه نه شمارلې کيږى.

ﷺ زموږ د اړخه دنکاح د جواز دليل دادې.چه د وينځې د نکاح د ولايت سبب د مولا لپاره په وينځه باندې ملك رقبه حاصلول دى.او دلته د نفس بيع په وجه مشترى د وينځې مالك شوې دى.نو هرکله چې مشترى په عقدبيع سره د وينځې مالك شو.نوده ته ددې د نکاح ولايت هم حاصل شوې دې.او هرکله چې مشترى ته د وينځې دنکاح ولايت حاصل دې.نو دده تړلې شوې نکاح به ټيك اوجائز وى.

په دې موقع باندې علامه ابن الهمام ﷫ يو اعتراض اود هغې ځواب ليکلې دې.ستاسو په معلوماتوکې د زياتوالى په خيال د لته ليکلې شى.

اعتراض* دادې.چه په وينځه باندې د قبضه کاوه نه وړاندې مشترى لپاره ددې وينځې نکاح کول جائز دى.خو ددې خرڅول جائز نه دى.داسې ولې ده؟

ځواب* ① ددې ځواب دادې.چه په غرر او دهوکې سره بيع فاسديږى.خو نکاح نه فاسديږى.په دې وجه د مشترى خرڅول به جائز نه وى.او نکاح به جائز وى.② دوهم ځواب دادې.چه د بيع د صحت لپاره د مبيع په سپارلو باندې قادرکيدل شرط دى.اودا قدرت د قبضه نه روسته حاصليږى.په دې وجه د قبضه نه وړاندې د،،قدرت على التسليم،، نه موندلو په وجه به بيع درست نه وى.اود نکاح د صحت لپاره چونکه قدرت على التسليم شرط نه دې.خکه به د قبضه نه وړاندې نکاح ټيك وى.اود ميره په وطى کولو سره به د مشترى قبضه ځکه ثابتيږى.چه د ميره په وطى کاوه باندې قدرت د مشترى داړخه حاصل شوې دې. که مشترى ددې وينځې نکاح نه وه کړې.نو ميره ته به ددې سره د وطى کاوه اجازت نه وو.نو معلومه شوه.چه د ميره په وطى کاوه باندې قدرت د مشترى د اړخه حاصل شوې دې.او هرکله چې د ميره په وطى باندې قدرت د مشترى د اړخه حاصل شوې دې.نود ميره فعل يعنى وطى کول به په منزله د مشترى دفعل وى.اوکه مشترى پخپله وطى کړې وه.نو قابض شوې به وو.نو هرکله چې ميره وطى اوکړله.نوبيا به هم مشترى قابض کيږى.اوکه ميره د وينځې سره وطى اونکړله.نو صرف په نکاح کولو سره به د مشترى قبضه نه ثابتيږى.

وَالْقِيَاسُ اَنْ يَّصِيْرَ قَابِضًا او قياس دادې.چه (صرف په نکاح کولوسره) مشترى قابض کيږى اِلْاَنَّهٗ تَعْيِيْبٌ حُكْمِيٌّ ځکه چې نکاح کول، حکماً عيب دار کول دى فَيُعْتَبَرُ بِالتَّعْيِيْبِ الْحَقِيْقِيِّ ځکه چې په حقيقى عيب دار کاوه باندې به قياس کولاى شى وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ اَنَّ او وجه د استحسان داده فِى الْحَقِيْقِيِّ اسْتِيْلَاءٌ عَلَى الْمَحَلِّ چې په حقيقى عيب دارکولوکې په محل باندې غلبه کيږى وَبِهٖ يَصِيْرُ قَابِضًا وَلَا كَذٰلِكَ الْحُكْمِىُّ او هم په دې سره قابض کيږى.او حکماً عيب دار کول داسې نه دى فَافْتَرَقَا نو په دواړو کې توپير اوشو.

حل اللغة: ① التعييب-عيب پيدا کول-② الاستيلاء-غلبه-③ الافتراق-جدا کيدل-④ يصير-ګرځى

تشريح:- اود قياس تقاضا داده.چه مشترى صرف په نکاح کاوه سره په وينځه باندې قبضه کونکې شمارلې کيږى.هم دا يو روايت د امام ابويوسف ﷫ نه هم دې.تردې که د نکاح نه روسته وينځه هلاکه شوه.نودا به د مشترى د ملك نه هلاکه وى.د قياس وجه داده.چه د وينځې کوم سړى سره نکاح کول وينځه حکماً عيبدار کول دى.هم دا وجه ده.که يوکس وينځه واخستله.او بيا معلومه شوه.چه دا وينځه واده شوې ده.نومشترى ته به د خيارعيب لاندې ددې د واپس کاوه اختيار وى.ددې نه ښکاره شوه.چه نکاح عيب حکمى دې.نودا عيب حکمى به



په عيب حقيقى باندې قياس کولې شى.او بائع سره که مشترى مبيع حقيقتاً عيب دارکړلو.مثلاً که د وينځې سترګه ئې ړنده کړله.يا ئې لاس کټ کړلو.نومشترى قابض کيږى.نوهم دغه ډول حکماً د عيب دار کاوه په صورت کې هم قابض کيږى.او وجه د استحسان داده.چه په حقيقى عيب دار کاوه کې په محل باندې غلبه کيږى.يعنى کوم محل ئې چې عيب دار کړې دې.په هغې ئې قابو حاصل کړې دې.مثلاً يوه وينځه ئې واخستله.اوددې سترګه ئې ړنده کړله.يا ئې لاس کټ کړلو.نود مشترى ددې فعل وينځې سره د متصل کيدلو په وجه د مشترى په وينځه باندې غلبه ثابت شوې ده.او په دغه ډول غلبې سره چونکه د مشترى قبضه ثابتيږى.ځکه به د وينځې په حقيقى عيب دار کاوه سره مشترى قابض کيږى.اودا خبره په حکماً عيب دار کولوکې نه مونديږى کيږى.په عيب حکمى سره صرف دومره کيږى.چه مبيع يعنى وينځې اړخ ته د خلګو رغبت او شوق کميږى.او ددې په وجه ثمن کميږى.په محل يعنى په وينځه باندې غلبه نه ثابتيږى.او هرکله چې داخبره ده.نود عيب حکمى او عيب حقيقى په مينځ کې ډير لوئې توپير دې.اود توپير په موجودګئ کې چونکه قياس کول جائز نه دې.ځکه د عيب حکمى په عيب حقيقى باندې قياس کول صحيح نه دې.

## د غلام خرڅولو حکم

قَالَ وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا فرمائي.که يو کس غلام واخستلو فَغَابَ او غائب شو والعبد فى يد البائع او غلام د بائع په قبضه کې دې فَاَقَامَ الْبَائِعُ الْبَيِّنَةَ اَنَّهٗ بَاعَهَا اِيَّاهُ او بائع بينه پيش کړل.چه بائع دا غلام خرڅ کړې دې فَاِنْ كَانَتْ غَيْبَتُهٗ مَعْرُوْفَةً لَمْ يُبَعْ فِىْ دَيْنِ الْبَائِعِ نوکه د مشترى غائب کيدل معلوم وى نودا غلام به د بائع په قرضه کې نشى خرڅولې لِاَنَّهٗ يُمْكِنُ اِيْصَالُ الْبَائِعِ اِلٰى حَقِّهٖ بِدُوْنِ الْبَيْعِ ځکه چې د بائع خپل حق ته رسيدل د خرڅولو نه بغير ممکن دى وَفِيْهِ اِبْطَالُ حَقِّ الْمُشْتَرِىْ او په خرڅولوکې د مشترى حق باطلول دى وَاِنْ لَمْ يُدْرَ اَيْنَ هُوَ او که دا معلومه نه وى.چه مشترى چرته (کوم خائې) دې بِيْعَ الْعَبْدُ نو غلام به خرڅولې شى وَاَوْفَى الثَّمَنَ اود بائع ثمن به ادا کولاى شى لِاَنَّ مِلْكَ الْمُشْتَرِىْ ظَهَرَ بِاِقْرَارِهٖ ځکه چې د مشترى مالك کيدل د بائع په اقرار سره ښکاره شوى دى فَيَظْهَرُ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِىْ اَقَرَّ بِهٖ مَشْغُوْلًا بِحَقِّهٖ نو په کومه وجه چې ده اقرار کړې دې.يعنى خپل حق سره مشغولولو سره.هم په دغه طريقه به ښکاره کيږى.

حل اللغة: ① الايصال-رسيدل-② دون-بغير-③ ابطال-باطلول-④ اوفى-پوره اخستې

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوکس يو غلام واخستلو.بيا مشترى په مبيع يعنى په غلام باندې د قبضه کاوه نه وړاندې غائب شو.اوتر اوسه پورې مشترى ثمن هم نه دې اداکړې.په داسې صورت کې که بائع قاضى ته دا درخواست اوکړې.چه مذکوره غلام دې خرڅ کړې شى.او زما ثمن دې ادا کړې شى.نو قاضى به د بائع دعوې اړخ ته نه متوجه کيږى.البته که بائع په دې خبره ګواهان پيش کړل.چه ما په فلانى کس چې غائب دې خپل غلام خرڅ کړې وو.خوده نه ثمن اداکړل.اونه ئې مبيع باندې قبضه اوکړله. نو ددې دوې (دوه) صورتونه دى. يا به مشترى ته د غائب سړى ځائې معلوم وى.يا به معلوم نه وى.يعنى ياخو به دا معلومه وى.چه مشترى کوم ځائې دې.او يابه معلومه نه وى.که د مشترى ځائې معلوم وى.نود بائع دين ادا کاوه لپاره به دا غلام نشى خرڅولې.ځکه چې په دې صورت کې د غلام خرڅولو نه بغير خپل حق وصولولې شى.په دې طريقه چې مشترى کوم ځائې موجود دې.بائع هلته لاړ شى.او خپل ثمن وصول کړى.اود غلام په خرڅولوکې د مشترى حق باطليږى.او دچا حق باطلول هم ټيك نه دى.نو هرکله چې د غلام په خرڅولوکې د مشترى حق باطلول لازميږى.اود خرڅولو نه بغير بائع خپل حق وصولولې شى.نود بائع دين ثمن ادا کاوه لپاره غلام نشى خرڅولې.

وَاِذَا تَعَذَّرَ اسْتِيْفَاؤُهٗ مِنَ الْمُشْتَرِىْ او کله چې د مشترى نه د بائع حق وصولول متعذر شو يَبِيْعُهُ الْقَاضِىْ فِيْهِ نو قاضى به غلام په دې حق کې خرڅوى كَالرَّاهِنِ اِذَا مَاتَ لکه کله چې راهن مړ شوې وى وَالْمُشْتَرِىْ اِذَا مَاتَ مُفْلِسًا او مشترى چې کله فقير مړ شوې وى وَالْمَبِيْعُ لَمْ يُقْبَضْ حالانکه په مبيع باندې قبضه نه ده شوې بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقَبْضِ په خلاف د مابعد القبض لِاَنَّ حَقَّهٗ لَمْ يَبْقَ مُتَعَلِّقًا بِهٖ ځکه چې د بائع حق مبيع سره متعلق پاتې نشو ثُمَّ اِنْ فَضَلَ شَىْءٌ يُمْسَكُ بيا که څه (زياتى)

پاتې شوی وي **يُمْسَكُ لِلْمُشْتَرِي** هغه به د مشتري لپاره ساتلې شي **لِأَنَّهُ بَدَلُ حَقِّهِ** ځکه چې هغه د مشتري د حق عوض دې **وَإِنْ نَقَصَ يَتْبَعُ هُوَ أَيْضًا** اوکه کم شو،نو مشتري پسې به رجوع کولې شي.

**حل اللغة:** ① الاستيفاء-پوره وصولی-② مفلس-غريب-③ يمسک-ايساروی-④ يتبع-وروسې کيږي

**تشريح:-** اوکه د مشتري ځائې معلوم نه وي،چه کوم ځائي دې،نو په داسې صورت کې مذکوره غلام خرڅولې شي.اود بائع حق به ادا کولې شي.ځکه چې د بائع د اقرار نه ثابته شوه. چې مشتري ددې غلام مالك دې.نو لكه څنګه چې ده اقرار كړې دې،په دغه طريقه به د مشتري ملك ښکاره شي.اود بائع اقرار په دې طريقه دې.چه دا غلام زما حق سره بوخت دې.يعنې مشتري د اخستلو په وجه د غلام مالك شوې دې.خوتر اوسه پورې نې ددې ثمن نه دې اداکړې.نوچونکه غلام د بائع په قبضه کې دې.اود مقبوضه شئ په سلسله کې د قابض قول معتبر وي.په دې وجه چې ده څنګه اقرار کړې دې.هم دغه ډول به معتبر وي.اود بائع اقرار داسې دې.چه مشتري دغلام مالك دې.خوددې ثمن د هغه په ذمه واجب دې.خود مشتري د اوسيدو ځائې معلوم نه دې.په دې وجه ددې ثمن وصولول متعذر او ناممکن دي.په دې وجه قاضي ته دا اختيار ورکړې شو.چه دې دا غلام خرڅ کړي.اود بائع ثمن اداکړي.لكه مثلاً كه راهن مړشو.نو مرتهن د شئ مرهونه زيات حقدار دې.يعنې د راهن د مرګ نه روسته كه د مرتهن لپاره خپل دين وصولول متعذرشي.نو شئ مرهونه به خرڅولې شي.اود مرتهن دين به اداکولې شي.او لكه مثلاً مشتري په مبيع باندې د قبضه كاوه نه وړاندې مفلس (غريب) شو.او مړشو.نود بائع ثمن ادا كاوه لپاره مبيع خرڅولې شي.دغه ډول د مشتري په داسې طريقه غائب كيدلو په صورت كې چې دده د اوسيدلو ځائې معلوم نه وي.قاضي ته دا حق وركړې شوې دې.چه دې غلام خرڅ كړي.اود بائع ثمن اداكړي.اوكه مشتري په مبيع باندې د قبضه كولونه روسته داسې غائب شو.چه دده پته معلوم نه ده.نود بائع ګواهان به نه قبليږي.او دده په دعوه باندې به غلام نشي خرڅولې.ځكه چې د بائع حق غلام سره متعلق پاتې نشو.بلكه د مشتري په ذمه كې دين شوې دې.نود بائع د ارخه به ګواهان په مشتري باندې د دين ثابتولو لپاره وي.حالانكه مشتري غائب دې.او زموږ په نيز غائب باندې د دين ثابتولو لپاره بينه نشي قبلولې.په دې وجه په دې صورت كې به د بائع بينه قبول نه وي.او دده دين ادا كاوه لپاره به غلام نشي خرڅولې.

علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په كوم صورت كې قاضي ته د بائع ثمن ادا كاوه لپاره د غلام خرڅولو اختيار وركړې شوې دې.په دغه صورت كې كه قاضي غلام خرڅ كړلو.اود بائع ثمن نې اداكړلو.اود ثمن ادا كاوه نه روسته څه بچ پاتې شو.مثلاً د بائع ثمن زر روپۍ وې.او قاضي غلام په دولس سوه روپۍ خرڅ كړلو.نود بائع ثمن ادا كاوه نه روسته دوې (دوه) سوه روپۍ پاته شوې.نودا دوې (دوه) سوه روپۍ به د مشتري لپاره محفوظ كولې شي.او په واپس راتلو به هغه ته وركولې شي.ځكه چې دا زياتي رقم د مشتري د حق يعنې د غلام بدل دې.اوكه د غلام ثمن د بائع د حق نه كم اوختلو.مثلاً د بائع حق زر روپۍ وو.او قاضي غلام په اته سوه روپۍ خرڅ كړلو.نودا دوې (دوه) سوه روپۍ به بائع د مشتري نه هغه وخت وصول كوي.چه كله بائع د مشتري په موندلو كې كامياب شي.

**په دوې (دوه) اخستونكوكښې د يوكس غائب كيدلو په صورت كښې د ثمن اداكولو مسئله**

**قَالَ فَإِنْ كَانَ الْمُشْتَرِي اثْنَيْنِ** بيا كه مشتريان (اخستونكي) دوې (دوه) نفر وي **فَغَابَ أَحَدُهُمَا** نو په دې دواړوكې يو غائب شو **فَلِلْحَاضِرِ أَنْ يَدْفَعَ الثَّمَنَ كُلَّهُ** نو حاضرته اختيار دې.چه دې پوره ثمن وركړي **وَيَقْبِضَهُ** او په غلام باندې قبضه اوكړي **وَإِذَا حَضَرَ الْآخَرُ** او كله چې دوهم حاضر شي **لَمْ يَأْخُذْ نَصِيبَهُ** نو هغه به خپله برخه نه اخلي **حَتَّى يَنْقُدَ شَرِيكَهُ الثَّمَنَ كُلَّهُ** ترڅو چې خپل شريك ته خپله برخه ثمن اداكړي **وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** [1] اودا د امام ابوحنيفه اود امام محمد رحمهما الله قول دې **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ** او امام ابويوسف رحمه الله فرمايي **إِذَا دَفَعَ الْحَاضِرُ الثَّمَنَ كُلَّهُ** چې كله حاضر پوره

[1] القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٦\٢٥٤) وردالمحتار(١٤\٢٤٢) نقلاً عن القول الراجح (١٢\٨٤)-



ثمن اداكړو **لَمْ يَقْبِضْ إِلَّا نَصِيبَهُ** نو دې صرف په خپله برخه باندې قبضه كولای شي **وَكَانَ مُتَطَوِّعًا بِمَا أَدَّى عَنْ صَاحِبِهِ** او كوم څه نې چې د خپل انډيوالان دارخه ادا كړي دي،په هغې كې به احسان كونكې وي. **لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ** ځكه چې ده د دوهم قرضه د هغه د حكم نه بغير ادا كړې ده **فَلَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ** په دې وجه نې دې د هغه نه واپس نشي اخستې **وَهُوَ أَجْنَبِيٌّ عَنْ نَصِيبِ صَاحِبِهِ** او چونكه دې د خپل انډيوالان د برخې (حصې) نه اجنبي (غير) دې **فَلَا يَقْبِضُهُ** په دې وجه د هغه په برخه باندې قبضه هم نشي كولې.

**حل اللغة:** ① يدفع-وركوی-② نصيب-حصه-③ متطوع-احسان كونكې-④ اجنبي-دريمګړې

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.كه دوې (دوه) نفر ملاؤ شو.او په شريكه نې يو غلام واخستلو.او بيا په دې دواړو كې يو مشتري د ثمن ادا كاوه نه وړاندې غائب شو.نو حاضر شريك به پخپله برخه باندې د قبضې مالك هغه وخت وي.چه كله پوره ثمن اداكړي.نوكه حاضرشريك پوره ثمن اداكړو.نود طرفينو او اما ابويوسف رحمه الله په مينځ كې په يوڅو خبرو كې اختلاف دې.① بائع به د شريك غائب په پوره برخه قبلولو باندې مجبورولې شي.اوكه نه؟ د طرفينو رحمهما الله په نيز د غائب شريك د برخې (حصې) ثمن قبلولو باندې به بائع مجبورولې شي.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به نشي مجبورولې.② كه بائع د غائب شريك د ثمن برخه قبوله كړله.نو آيا بائع به په دې خبره مجبورولې شي.چه دې حاضر شريك ته د غائب د مبيع برخه اوسپاري.اوكه په دې به نشي مجبورولې؟ د طرفينو رحمهما الله په نيز به مجبورولې شي.خود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به نشي مجبورولې.بلكه حاضر شريك به صرف پخپله برخه باندې قبضه كوي.او پخپله برخه باندې د قبضه كاوه مطلب دادې.چه شريك حاضر د خپل وار په ورځ به ددې غلام نه خدمت اخلي.اود شريك غائب د وار په ورځ به دده نه خدمت نه اخلي.③ كه شريك حاضر په غلام باندې قبضه اوكړله.او پوره ثمن نې اداكړل.نو آيا حاضر شريك ته به د غائب شريك نه د اداشوی نصف ثمن واپس اخستلو اختيار وي.او كه نه وي؟ د امام ابويوسف رحمه الله په نيز حاضر شريك ته دا اختيار نشته.اود طرفينو رحمهما الله په نيز ده ته دا اختيار حاصل دې.بلكه شريك حاضر ته دا اختيار هم شته.چې تركومه پورې غائب شريك د خپلې برخې (حصې) ثمن ادانكړي.نودې د هغه برخه مبيع ځان سره اوساتي. ترڅو چې غائب شريك كله د خپلې برخې (حصې) ثمن اداكړي.نو حاضر شريك به ده ته دده برخه مبيع اوسپاري.

د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه شريك حاضر د غائب شريك قرضه يعنې په ثمن ادا كاوه كې متبرع او احسان كونكې شو.او تبرع كونكي ته د تبرع كاوه نه روسته د رجوع اختيار نه وي.په دې وجه به حاضرشريك ته د غائب شريك نه د نصف ثمن واپس اخستلو اختيارنه وي.او هركله چې حاضرشريك ته د نصف ثمن واپس اخستلو اختيارنشته.نو شريك حاضر ته به د غائب شريك په برخه مبيع باندې د قبضه كاوه اختيار هم نه وي. ځكه حاضرشريك د خپل غائب شريك د برخې (حصې) په سلسله كې اجنبي دې.او هيڅ يو اجنبي ته د بل په برخه باندې د قبضه كاوه اختيار نه وي.او هركله چې حاضرشريك ته د غائب شريك په برخه مبيع باندې د قبضه كاوه اجازت نشته.نو بائع به د غائب شريك د برخه مبيع په سپارلو باندې څنګه مجبورولې شي.او حاضر شريك د غائب شريك د ارخه په نصف ثمن ادا كاوه كې چونكه متبرع دې.او په تبرعاتو قبلولو باندې هيڅ څوك نشي مجبورولې.په دې وجه د غائب شريك د ثمن د برخې (حصې) قبلولو باندې به بائع نشي مجبورولې.

**وَلَهُمَا** اود طرفينو رحمهما الله دليل دادې **أَنَّهُ مُضْطَرٌّ فِيهِ** چې شريك حاضر په پوره ثمن وركولوكې مجبور او لاچار دې **لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ الِانْتِفَاعُ بِنَصِيبِهِ** ځكه چې دده لپاره د خپلې برخې (حصې) نه نفع اخستل ممكن نه دي **إِلَّا بِأَدَاءِ جَمِيعِ الثَّمَنِ** خو په پوره ثمن ادا كاوه سره **لِأَنَّ الْبَيْعَ صَفْقَةٌ وَاحِدَةٌ** ځكه چې بيع صفقه واحده ده.او كوم وخت پورې چې په ثمن كې څه پاته وي **وَلَهُ حَقُّ الْحَبْسِ مَا بَقِيَ شَيْءٌ مِنْهُ** بائع ته د مبيع ساتلو (منع) كاوه حق حاصل دې **وَالْمُضْطَرُّ يَرْجِعُ** او مضطر او مجبور واپس اخستې شي **كَمُعِيرِ الرَّهْنِ** لكه رهن عارية وركونكې، **وَإِذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَلَيْهِ** او هركله چې حاضر شريك د غائب نه د هغه برخه واپس اخستې شي **كَانَ لَهُ حَقُّ الْحَبْسِ عَنْهُ** نوهغه ته د غائب نه د مبيع منع كاوه حق هم شته

إِلَى أَنْ يَسْتَوْفِيَ حَقَّهُ تردې چې حاضر شريك خپل پوره حق وصول كړي كَالْوَكِيلِ بِالشِّرَاءِ إِذَا قَضَى الثَّمَنَ مِنْ مَالِ نَفْسِهِ لكه وكيل بالشراء چې كله د خپل مال نه ثمن اداكړي.

حل اللغة: ① مضطر-مجبور-② الانتفاع-فائده اخستل-③ الحبس-بنديز-④ جميع الثمن-واړه ثمن

تشريح:- د طرفينو رحمهما الله دليل دادې چه حاضر شريك په پوره ثمن ادا كاوه باندې لاچار او مجبوره دې. ځكه چې د شريك د خپل برخې (حصې) مبيع نه هغه وخته پورې نفع نشي اخستلې، چه تركومه پورې حاضر اداني كړي. ځكه چې صفقه متحد ده. اوبائع مبيع هغه وخته پورې خپل خان سره ساتلې شي، چه تركومه پورې دې پوره ثمن معمولي شان برخه هم د مشتري په ذمه پاته وي. نوكه شريك حاضر د خپلې برخې (حصې) ثمن اداكړلو. اود غائب شريك برخه ني ادانكړله. نو بيع چونكه صفقه واحده ده. ځكه به د بائع لپاره پوره مبيع يعني د غلام بندولو اختيار وي. او هركله چې په دې صورت كي بائع ته د پوره مبيع ساتلو اختيار دې. نود شريك حاضر لپاره دخپلې برخې (حصې) د مبيع نه نفع اخستل هم ممكن پاتې نشو. اوهركله چې د غائب شريك د اړخه د ثمن ادا كاوه نه بغير د حاضرشريك لپاره د خپلې برخې (حصې) نه نفع اخستل ممكن نه دی. نوحاضر شريك د غائب شريك د اړخه دده د برخې (حصې) ثمن ادا كاوه باندې لاچار او مجبورشو. اوكوم كس چې مجبور او مضطر شي. او دچا د اړخه دهغه د حكم نه بغير څه اداكړي. نودې مضطر ته د اداشوی مال واپس اخستلو اختيار وي. لكه مثلاً يو كس بل كس ته څه شئ دې لپاره عارية وركړلو. چه دې دا دچا سره رهن كيږدی. او قرضه واخلي. او خپل كار روان كړي. نو مستعير دا دچا سره رهن كيخودلو. او قرضه ني واخستله. بيا مستعير يعنی راهن مفلس شو. يا غائب شو. او معير يعني د مرهونه شی مالك د مرتهن قرضه اداكړله. اوخپل شئ ني راخلاص كړلو. نو معير د راهن نه هغه مال واپس اخستلې شي. كوم چې ده د هغه د اړخه مرتهن ته اداكړې دې. اګرچه معير د راهن د حكم نه بغير اداكړې دې. ځكه چې معير په قرضه اداكولو كي مجبور دې. اومجبور ځكه دې. چه دې دخپل مال نه هغه وخت پورې نفع نشي اخستلې. چه تركومه پورې د مرتهن قرضه ادانكړي. نوهم دغه ډول په ذكرشوې مسئله حاضرشريك، د غائب شريك د اړخه دده د برخې (حصې) په ثمن اداكولو كي مجبور دې. په دې وجه ده ته د غائب شريك نه د واپس اخستلو اختيار وركړې شوې دې. او هركله چې د حاضرشريك لپاره د رجوع كاوه حق ثابت شو. نوده ته به دا حق هم وي. چه تركومه پورې دې خپل پوره حق د غائب شريك نه وصول نكړي. تر هغه وخت پورې مبيع خپل خان سره بندولې شي. لكه مثلاً يوكس بل څوك د څه شئ اخستلو وكيل جوړ كړي. او وكيل خپل مال سره ثمن اداكړو. نودا وكيل بالشراء د موكل نه مبيع هغه وخت پورې بندولې شي. چه تركومه پورې خپل پوره ثمن وصول نكړي.

### د زر مثقاله سرو او سپينوزرو په عوض اخستلو په صورت كښې دده د اداكولو مسئله

📖 قَالَ فرمايي وَمَنْ اشْتَرَى جَارِيَةً بِأَلْفِ مِثْقَالٍ ذَهَبٍ وَفِضَّةٍ اوكه يو كس وينځه د يو زرمثقال سرو او سپينو زرو په عوض واخستله فَهُمَا نِصْفَانِ نودا دواړه به نصف نصف لازم وي لِأَنَّهُ أَضَافَ الْمِثْقَالَ إِلَيْهِمَا عَلَى السَّوَاءِ ځكه چې ده مثقال دې دواړو اړخ ته يوشان منسوب كړې دې فَيَجِبُ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خَمْسُمِائَةِ مِثْقَالٍ نو په دې دواړوكي به هر يو پنځه سوه مثقاله واجب وي لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ ځكه چې واجب اولويت ( غوره والي) نه دې.

حل اللغة: ① الجارية-وينځه-② ذهب-سره زر-③ الفضة-سپين زر-④ الاولوية-غوره والي

تشريح:- صورت د مسئلې دادې چه يوسړي يوه وينځه واخستله. اودا ني اوونيل چه مادا وينځه د زرمثقاله سرو زرو او سپينوزرو په عوض اخستې ده. نودا بيع صحيح ده. او په مشتري به پنځه سوه مثقاله د سروزرو واجب وي. او پنځه سوه مثقاله به د سپينوزرو واجب وي. اوكه دا اعتراض اوكړې شي. چه د سرو زرو مثقالو ته ترجيح حاصله ده. ځكه چې مثقالو سره د سروزرو اختصاص دې. په دې طريقه چې مثقالو سره د سروزرو وزن كولې شي. د سپينو زرو وزن نه كيږي. نو ددې ترجيح په وجه پوره زرمثقاله د سرو زرو واجبيدل پكار دی؟ ددې ځواب دادې. چه لكه څنګه په دې اعتبار سره سرو زرو ته ترجيح حاصل ده. دغه ډول په بل اعتبار سره سپينو زرو ته ترجيح حاصل ده. په دې طريقه چې په بيع وغيره كي عام طورباندې د سپينو زرو استعمال كيږي. د سرو زرو استعمال نه



كيږي. نوهركله چې په دواړو كي هريو ته په يوه يوه وجه ترجيح حاصل ده. نود تعارض په وجه د ترجيح دواړه وجهې ساقط شوې. او هركله چې دواړه وجهې ساقط شوې. نو سرو او سپينو زرو دواړو اړخ ته د مثقال نسبت برابر كيدلو په وجه به د دواړو نصف نصف مثقال واجب وي. يعنی پنځه سوه مثقاله د سرو زرو او پنځه سوه مثقاله به د سپينو زرو واجب وي.

وَعَلَى هٰذَا لَوِ اشْتَرَى جَارِيَةً بِأَلْفٍ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ اوهم ددې پشان كه يوكس په سرو او سپينو زرو سره د يو زر په عوض وينځه واخستله يَجِبُ مِنَ الذَّهَبِ مَثَاقِيلُ نود سرو زرو څخه به مثقال واجب وي وَمِنَ الْفِضَّةِ دَرَاهِمُ وَزْنَ سَبْعَةٍ اود سپينو زرو څخه به د وزن سبعه دراهم واجب وي لِأَنَّهُ أَضَافَ الْأَلْفَ إِلَيْهِمَا ځكه چې ده يو زر دې دواړو اړخ ته منسوب كړې دې فَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَزْنِ الْمَعْهُودِ فِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دې دواړوكي به هر يو كي وزن معهود ( متعارف) اړخ ته رجوع كولې شي.

تشريح:- يوكس د يو زر، سرو زرو او سپينو زرو په عوض يوه وينځه واخستله اود مثقال يا دراهمو ذكرني اونكړلو. نود سرو زرو پنځه سوه مثقاله به واجب وي. او د سپينو زرو پنځه سوه دراهم به واجب وي. خو په دراهموكي به دوزن سبعه درهم معتبر وي. او وزن سبعه دادې. چه لس درهمه د اووه مثقالو برابر وي. ددې تفصيل په اشرف الهدايه ج۳ كتاب الزكاة كي تيرشوې دې.

ددې دليل دادې. چه مشتري د يو زرعدد سرو او سپينو زرو اړخ ته منسوب كړې دې. نو كوم وزن چې متعارف وي. د هغې اعتبار به كولې شي. او په سرو زرو كي وزن متعارف چونكه مثاقيل دی. په دې وجه به د سرو زرو مثقالونه واجب وي. او په سپينوزرو كي چونكه دراهم وزن سبعه دی. ځكه به دسپينو زرو دراهم واجب وي. نو په دې صورت كي به پنځه سوه مثقاله د سرو زرو، او پنځه سوه مثقاله به د سپينو زرو واجب وي.

### د كره درهم په عوض كهوټه ادا كولونه روسته قرضخواه خرچ كړلي نود پور اداكولو حكم

📖 قَالَ فرمايي وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ جِيَادٍ اوكه د يوكس په بل باندې لس درهمه كره وي فَقَضَاهُ زُيُوفًا خو قرضدار قرضخواه ته كهوټه ادا كړل وَهُوَ لَا يَعْلَمُ بِهِ داسې حال كي چې قرضخواه ته معلوم نه دی فَأَنْفَقَهَا نو قرضخواه هغه خرچ كړل أَوْ هَلَكَتْ يا هغه تلف شو يا آنرا تلف كرد فَهُوَ قَضَاءٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ نودا د طرفينو رحمهما الله په نيز ادا شو وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ او امام ابويوسف رحمه الله فرمايي يَرُدُّ مِثْلَ زُيُوفِهِ وَيَرْجِعُ بِدَرَاهِمِهِ [1] چې قرضخواه به كهوټه دراهم واپس كړي. او كره دراهم دې واخلي لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْوَصْفِ مَرْعِيٌّ ځكه چې د قرضخواه حق په وصف كي هم هغه شان ملحوظ دې كَمَا هُوَ فِي الْأَصْلِ لكه څنګه په اصل كي ملحوظ دی وَلَا يُمْكِنُ رِعَايَتُهُ بِإِيجَابِ ضَمَانِ الْوَصْفِ او ددې حق رعايت د وصف ضمان واجبولو سره ممكن نه دې لِأَنَّهُ لَا قِيمَةَ لَهُ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهِ ځكه ددې د جنس سره د مقابلې په وخت د وصف هيڅ قيمت نه وی فَوَجَبَ الْمَصِيرُ إِلَى مَا قُلْنَا په دې وجه به دې اړخ ته رجوع كولې شي. كوم چې موږ اوونيل.

حل اللغة: ① جياد-كره-② زيوف-كهوټه-③ الرعاية-لحاظ ساتل-④ المصير-رجوع

تشريح:- صورت د مسئلې دادې چه د يوكس په بل كس باندې لس درهمه كره پور دی. نو قرضداری قرضخواه ته لس درهمه اداكړل. او قرضخواه ته ددې د كهوټه كيدلو علم اونشو. خوده خرچ كړلې. يادا هلاك شوې. نود طرفينو رحمهما الله په نيز د قرضدار قرضه ادا شوه. په ده باندې د قرضخواه هيڅ حق پاته نشو. خود امام ابويوسف رحمه الله مذهب

---

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في ردالمحتار (٢٤٣\٤) والبحر الرائق (١٧٧\٦) والطحطاوی (١٢٩\٣) وحاشية الشبلی (١٠٣\٤) نقلاً عن القول الراجح (٨٤\٢)-

دادې چه په ذکرشوې صورت کې کوم لس درهمه کهوټه ئې چې خرچ کړلې، یا هلاك شوې، ددې مثل دې قرضدار ته
واپس کړي، او دده نه دې لس درهمه کره واخلي.

د امام ابویوسف ؒ دلیل دادې، چه د قرضخواه حق د اصل او کره کیدلو په په اعتبار سره په وصف کې داسې
ملحوظ دې، لکه څنګه چې د مقدار په اعتبار سره په اصل کې ملحوظ دې، لکه که د قرضخواه حق د مقدار په
اعتبار سره کم شو، مثلاً د لس درهمه په ځائې اته درهمه اوخستل، نو قرضخواه ته د خپل حق د مقدار په اندازه
قرضداري ارخ ته د رجوع کاوه اختیار دې، یعنی د نورو دوې (دوه) درهمو د مطالبې حق حاصل دې، دغه ډول که د
قرضخواه حق د کیفیت په اعتبار سره کم شو، مثلاً د کره په ځائې کهوټه او خنلې، نو بیا به هم قرضخواه ته
قرضداري ارخ ته د کره والې د صفت په سلسله کې د رجوع کاوه حق حاصل وي، خو په قرضداري باندې صرف د
کره والې د صفت ضمان واجبول ممکن نه دي، څکه چې شئ کله د خپل جنس سره مقابل وي، نو د وصف هیڅ قیمت
نه وي، مثلاً د یوکره درهم که د یوکهوټه درهم سره تبادله اوشي، نو جائز ده، څوکه د یوکره درهم د دوې (دوه) کهوټو
درهمو سره تبادله اوشي، اودا اوونیلې شي، چه یو درهم د یو درهم په عوض او یو کهوټه درهم د کره درهم د د کره
والې او د اصلیت د صفت په عوض دې، نودا به رباء وي، اودا ناجائز دي، او رباء هغه وخت لازمیږي، چه کله علت د
رباء موندلو نه روسته یوعوض کم او بل عوض زیات وي، نو معلومه شوه، چه شریعت د اسلام دوې (دوه) کهوټه
درهم د یوکره درهم نه زیات شمار کړي دي، او یو کهوټه درهم ئې د کره درهم د کره والې د صفت قیمت نه دې
شمار کړې، بهرحال دا خبره ثابته شوه، چه د خپل جنس سره د مقابله په وخت د صفت هیڅ قیمت نه وي، اوهرکله چې
د وصف هیڅ قیمت نشته، نو په قرضداري به خائله د کره والې د صفت ضمان واجبول هم ممکن نه وي، څکه چې د
کوم شئ څه قیمت نه وي، د هغې ضمان نه واجبیږي، او هرکله چې جدا د کره والې د صفت ضمان واجبول ممکن نه
دي، نود قرضخواه د کره والې د وصف د حق رعایت ساتلو په وخت به هم هغه صورت اختیارولې شي، کوم چې امام
ابویوسف ؒ ذکر کړې دې، یعنی قرضخواه به د کهوټه دراهمو مثل قرضدار ته واپس ورکړي، او د هغه څخه به کره
دراهم واخلي.

وَهُمَا او د طرفینو ؒ دلیل دادې أَنَّهُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ چې کهوټه دراهم هم ددې د حق د جنس څنې دي حَتَّى لَوْ تَجَوَّزَ بِهِ فِيمَا
لَا يَجُوزُ الِاسْتِبْدَالُ او کهوټه دراهم ئې په داسې عقد کې واخستل په کوم کې چې بدل
ترديږ که بې پرواهي ئې اوکړه
جَازَ فَيَقَعُ بِهِ الِاسْتِيفَاءُ نو دا جائز دي، نو په دې سره به حق حاصلول ثابت شي وَلَا يَبْقَى حَقُّهُ او دده حق
اخستل جائز نه دي
فِي الْجَوْدَةِ خو په کره والي کې وَلَا يُمْكِنُ تَدَارُكُهَا بِإِيجَابِ ضَمَانِهَا او د کره والي تدارك (
به پاتې نه پاتې کیږي الْأَصْلِ لِأَنَّهُ إِيجَابٌ لَهُ عَلَيْهِ او هم دغه ډول د اصل ضمان واجبولو سره هم ممکن نه دي څکه چې د اصل
راګرخول) ددې ضمان واجبولو سره ممکن نه دي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دي وَكَذَا
بِإِيجَابِ ضَمَانِ الْأَصْلِ لِأَنَّهُ إِيجَابٌ لَهُ عَلَيْهِ
ضمان واجبول، د قرضخواه لپاره پخپله دده په ذات باندې واجبول دي. وَلَا نَظِيرَ لَهُ حالانکه په شریعت کې ددې هیڅ
مثال نشته.

**حل اللغة:** ① الجودة-کره والې-② التدارك-لاندې کول-③ ایجاب-واجبول-④ یبقی-پاته کیږي

**تشریح:**- د طرفینو ؒ دلیل دادې، چه کهوټه دراهم هم د قرضخواه د حق جنس څنې دي، یعنی کهوټه دراهم هم
دراهم دي، او د قرضخواه حق هم د دراهمو سره متعلق وو، او د کهوټه دراهمو د قرضخواه د حق جنس څنې کیدلو
دلیل دادې، چه په عقدسلم کې که رب السلم د کره درهمو په ځائې کهوټه دراهم ورکړل، او دواړه جلا شو، بیا مسلم
الیه ته معلومه شوه، چه دراهم کهوټه دي، خو مسلم الیه هیڅ پرواه اونکړله، او پخپل نقصان ئې صبر اوکړلو، نودا
جائز دي، نوکه کهوټه دراهم د مسلم الیه د حق جنس یعنی د کره دراهمو جنس څنې نه وو، نودا به په راس المال
باندې د قبضه کاوه نه وړاندې د هغې په عوض د بل شئ اخستل وو، حالانکه په عقدسلم کې په راس المال باندې
د قبضه کولونه وړاندې ددې استبدال جائز نه دې، نو په سلم کې د مسلم الیه په راس المال باندې د قبضه کاوه نه
وړاندې استبدال جائز نه دې، نومسلم الیه د کره دراهمو په ځائې کهوټه دراهم واخستل او بې پرواهي ئې



اوکړله، خپل نقصان ئې برداشت کړلو، نودا جائز دي، حالانکه په عقدصرف کې په عوضین باندې قبضه کاوه نه
وړاندې ددې په بدله کې د بل څه شئ اخستل جائز نه دي، ددې نه دا هم معلومه شوه، چه کهوټه دراهم د کره دراهم د
جنس څنې دي، یعنی کهوټه دراهم هم دراهم دي، نو قرضخواه چې کهوټه دراهم واخستل، خپل حق ئې وصول
کړو، البته دومره خبره ضرور ده، چه د قرضخواه د حق جودت (د کره والي) صفت پاته شو، حاصل دا چه قرضخواه د
کهوټه دراهمو په صورت کې اصل دراهم او نفس دراهم وصول کړل، خویا دې د کره والي د وصف ضمان واجب
شي، او د قرضخواه دا نقصان دې پوره کړې شي. دوهم دا چه د اصل دراهمو ضمان واجب شي، او دا پوره کړې
شي، خودا دواړه صورتونه ناممکن دي، ړومبې صورت خو شرعاً هم ناممکن دي، او عقلاً هم ناممکن دي، شرعاً
څکه ناممکن دي، چه وړاندې تیرشوي دي، چه کله د څه شي مقابله ددې د جنس سره اوکړې شي، نو د وصف هیڅ
قیمت نه وي، او د کوم شي چې هیڅ قیمت نه وي، شرعاً ددې ضمان هم نه واجبیږي، په دې وجه خائله د کره والي د
صفت ضمان په قرضداري باندې نه واجبیږي، او عقلاً څکه ناممکن دي، چه د کره والي صفت د اصل دراهمو نه
جلا کول ناممکن دي، نو هرکله چې د کره والي صفت د اصل دراهمو نه جلا کول ناممکن دي، نو خائله د کره والي د
صفت ضمان واجبول هم ناممکن دي، او دوهم صورت څکه ناممکن دې، چه د اصل دراهمو ضمان واجبولو مطلب
دادې، چه قرضخواه کوم کهوټه دارهم واخستل او خرچ ئې کړل، یا دا هلاك شو، نو ددې کهوټه دراهمو ضمان په
قرضخواه باندې واجب کړې شي، چه قرضدار، قرضخواه ته کره کهوټه واپس کړي، نو په دې صورت کې به د کهوټه
دراهمو ضمان په قرضخواه باندې څکه واجبولې شي، چه ده ته کره دراهم ملاؤ شي، نو ګویا په قرضخواه باندې
ضمان واجب کړې شو، پخپله دده د فائدې دپاره، حالانکه په شریعت کې ددې څه مثال نشته، چه په چا څه ضمان
واجب کړې شي، چه ده ته فائده اوشي، بلکه ضمان په یو ملك باندې واجبولې شي، او فائده ئې بل کس ته وي، نو
هرکله چې د اصل دراهمو ضمان واجبولو کې د قرضخواه د فائدې لپاره قرضخواه باندې ضمان واجبول
لازمیږي، او ددې په شریعت کې هیڅ مثال نشته، نودا صورت هم ناممکن دې، او هرکله چې ضمان وصف او ضمان
اصل دواړه ناممکن دي، نوهم دا به ونیلې شي، چه کله قرضخواه کهوټه دارهم واخستل، نو دده قرضه ادا شوه، اوس
ده ته د قرضدار نه د بل څه زیاتي شئ مطالبې حق نشته.

## د مارغانو د بچو یا د هوسئ نیولو کښې د ملکیت حکم

قَالَ فرمایي وَإِذَا أَفْرَخَ طَيْرٌ فِي أَرْضِ رَجُلٍ که دیو کس په مځکه کې مارغه بچې راوړل فَهُوَ لِمَنْ أَخَذَهُ نودا به د هغه
کس وي، چا چه دا نیولې وي وَكَذَا إِذَا بَاضَ فِيهَا او دغه ډول که په یوه مځکه کې (کوم مارغه) هګئ واچولې وَكَذَا إِذَا
تَكَنَّسَ فِيهَا ظَبْيٌ او دغه ډول که دچا په مځکه کې هوسئ (د خپل اوسیدو) ځائې جوړ کړو لِأَنَّهُ مُبَاحٌ څکه چې په دې
کې هر یو مباح دې سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ د چا لاس چې دې ارخ ته وړاندې اورسیدلو وَلِأَنَّهُ صَيْدٌ او څکه چې په دې کې هر یو
ښکار دې وَإِنْ كَانَ يُؤْخَذُ بِغَيْرِ حِيلَةٍ اګرچه دا د حیلې او تدبیر نه بغیر نیولې شوې وي وَالصَّيْدُ لِمَنْ أَخَذَهُ او ښکار هم
د هغه چا وي، چا چې دا اونیولو وَكَذَا الْبَيْضُ او هم دا حکم د هګو دې لِأَنَّهُ أَصْلُ الصَّيْدِ څکه چې هګئ د ښکار اصل
دې وَلِهَذَا يَجِبُ الْجَزَاءُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِكَسْرِهِ أَوْ شَيِّهِ او هم په دې وجه په محرم باندې په هګئ ماتولو او ایشولو باندې جزاء
واجبیږي.

**حل اللغة:** ① افرخ-بچې راوړي-② طیر-مارغه-③ باض-هګئ واچوله-④ الصید-ښکار

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې، که دیو کس په مځکه کې کوم مارغه بچې راوړل، یا کوم مارغه هګئ واچولې، یا
هوسئ دچا په مځکه کې د خپل اوسیدو ځائې جوړ کړو، او د زمکې مالك دا مځکه ددې مقصد لپاره نه وي جوړه
کړې، نو د زمکې مالك به د ذکرشوي څیزونو مالك نه وي، بلکه چې چا مځکې اونیول، هم هغه به ددې څیزونو
مالك وي.

دلیل ① دادې، چه د مارغه بچې او هوسئ ښکار دي، او د نبي کریم ﷺ د قول «الصيد لمن أخذه» په وجه ښکار هم
د هغه کس وي، څوك ئې چې اونیسي، اګرچه د څه حیلې نه ئې بغیر نیولې وي، یعنی د څه حیلې نه بغیر نیول دا

دښكار كاوه نه نه خارجوي.لكه مثلا د يوكس په مځكه كي د يوښكارى خپه ماته شوه.نودا به د ښكار كونكى ګناه وي.د زمكې د مالك به نه وي.او پاتي شوه هګئ، نو ددې حكم هم د ښكار پشان دې.ځكه چې هګئ پخپله ښكار نه دې.خود ښكار اصل او بنا (بنياد) دې.هم دا وجه ده.كه حاجى په حالت د احرام كي هګئ ماته كړله.يا ئې دا اوويشوله.نو په ده هم هغه شان جرمانه واجبيږي.لكه څنګه چې په ښكار كونكى باندې واجبيږي.نو معلومه شوه چې هګئ هم د ښكار په حكم كي ده.

وَصَاحِبُ الْأَرْضِ لَمْ يُعِدَّ أَرْضَهُ اود زمكې مالك خپله مځكه ددې مقصد لپاره نه ده جوړه كړې. فَصَارَ كَنَصْبِ شَبَكَةٍ لِلْجَفَافِ نودا د اوچولو لپاره د جال خورولو پشان شو وَكَذَا إِذَا دَخَلَ الصَّيْدُ دَارَهُ لكه چې په يوكور كي يو ښكار داخل شو أَوْ وَقَعَ مَا نُثِرَ مِنَ السُّكَّرِ وَالدَّرَاهِمِ فِي ثِيَابِهِ يا هغه خوږ خيز (لكه ګړه يا چوارې) يا درهم كوم چې خپاره كړې شوى دى هغه دده په كپړوكي پريوتلې مَا لَمْ يَكُفَّهُ نو دې به ددې مالك نه وي تركومه چې دا بند نكړي أَوْ كَانَ مُسْتَعِدًّا لَهُ يا ئې كپړه ددې مقصد لپاره خوره كړې وي.

حل اللغة: ① السكر-خوږ خيز-② شبكة-جال-③ الجفاف-خورول-④ دار-كور

تشريح:- د صاحب هدايه رحمه الله عبارت «وصاحب الأرض لم يعد أرضه لذالك....» دې خبرې اړخ ته اشاره كوي.كه د زمكې مالك خپله مځكه ددې مقصد لپاره تياره كړې وي.چه مارغان به په دې كي هګئ اچوي.يا به پكي بچي راوړي.يا به هوسئ په دې كي اوسيږي.نو په دې صورت كي به د ذكرشوى ځيزونو نيونكئ ددې مالك نه وي.بلكه د زمكې مالك به ددې ځيزونو مالك وي.او ددې ① مثال داسې دې.لكه مثلاً يوكس خپل جال اوچولو لپاره خوركړو.اتفاق سره په دې كي يو حيوان (ځاروي) ګير شو.نو كوم كس چې دا مخكې اونيسى.هم هغه به ددې مالك وي.اوكه دجال مالك خپل جال اوچولو لپاره خوركړې نه وي.بلكه د ښكار كاوه لپاره ئې خور كړې وي.نو كوم ځارې چې په دې كي ګيرشي.ددې نيونكې به ددې مالك نه وي.بلكه د جال مالك به ددې مالك وي.② ددې دوهم مثال دادې.چه د يوسړې په كوركي د ښكار حيوان (ځاروي) داخل شو.اود كور مالك ته ددې علم اونشو.خوده دروازه بنده كړله.نودا حيوان (ځاروي) به د كور د مالك نه وي.چه څوك ئې هم مخكې اونيسى.هغه به ددې مالك وي.اوكه حيوان (ځاروي) كورته داخل شو.اودكور مالك ته ددې علم هم اوشو.بيا ده دروازه او روشندان بند كړلو.نودا حيوان (ځاروي) به د كور د مالك وي.③ دريم مثال دادې.كه يوكس خوږ شئ يعني چهوارې يا درهم اوشيندل.اود يوكس په كپړوكي اوغورځيدل . نوكه ده خپله كپړه ددې مقصد لپاره نه وي خوره كړې.اونه ئې د غورځيدلونه روسته كپړه راټوله كړې وي.نودې به ددې مالك نه وي.البته كه ده خپله كپړه ددې مقصد لپاره خوره كړې وي.ياني كپړه ددې مقصد لپاره نه وه خوره كړې.خود چهوارو يا درهم غورځيدلو نه روسته ئې كپړه راټوله كړله.نو په دې دواړو صورتونوكي به هم دا د كپړو والا ددې مالك وي.بل كس ته به ددې نه اخستل حلال نه وي.دغه ډول كه مځكه د چڼچڼو د هګو،د بچو،اود هوسو وغيره لپاره تياره كړې نه وي.نود زمكې مالك به ددې مالك نه وي.بلكه چې څوك ئې مخكې اونيسى.هم هغه به ددې مالك ګڼرلې شي.اوكه مځكه ددې مقصد لپاره جوړه شوې وي.نود زمكې مالك به ددې ځيزونو مالك وي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا عَسَّلَ النَّحْلُ فِي أَرْضِهِ به خلاف ددې كله چې دده په مځكه كي د شهدو مچو شهد جمع كړل لِأَنَّهُ عُدَّ مِنْ أَنْزَالِهِ ځكه چې شهد د زمكې حاصلاتو (پيداوار) ځني شمارلې شي فَيَمْلِكُهُ تَبَعًا لِأَرْضِهِ نود خپلې زمكې تابع به ددې هم مالك كيږي كَالشَّجَرِ النَّابِتِ فِيهَا لكه هغه ونه كومه چې دده په مځكه كي راختلې وي وَالتُّرَابِ الْمُجْتَمِعِ فِي أَرْضِهِ بِجَرَيَانِ الْمَاءِ وَاللهُ أَعْلَمُ او لكه هغه خاوره كومه چې د اوبو په بهيدو سره دده په مځكه كي جمع شوى وي.

حل اللغة: ① عسل-شهد جوړ كړو-② النحل-د شهدو مچې-③ انزال-د زمكې محصولات-④ الشجر-ونه

تشريح:- «بخلاف العسل......الخ» علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.كه د يوكس په مځكه كي د شهدو مچو شهد جمع كړل.نود زمكې مالك به ددې شهدو مالك وي.ځكه شهد داسې شئ دې.چه دزمكې په پيداوار او حاصلاتو كي



شمارلې كيږي.ځكه چې شهد خونه هرځائې پيدا كيږي.اونه د هر ډول غذا نه پيدا كيږي. بلكه ددې لپاره غذا هم مخصوص وي.او مكان هم مخصوص وي.نوهركله چې مچو دچا په مځكه كي شهد جمع كړل.نو معلومه شوه چه دا هم ددې زمكې پيداوار دې.اوهركله چې شهد د زمكې پيداوار دې. نو دا به د زمكې تابع وي.اوچه د زمكې تابع شو.نود هغه كس په ملك كي به داخل وي.څوك چې د زمكې مالك دې.لكه څنګه چې په مځكه كي راختونكې ونې د زمكې تابع د هغه كس ملك وي.دچا چې دا مځكه ده.اګرچه ده دا كرلې نه وي.او لكه مثلاً په يوه مځكه كي د اوبو په بهيدلو سره څه خاوره جمع شوه.نودا به هم دزمكې تابع وي.اوهم دهغه كس به شمارلې شي.څوك چې ددې زمكې مالك دې.نوهم دغه ډول به شهدهم دزمكې تابع وي.اود زمكې د مالك به شمارلې شي.

# كتاب الصرف

ژباړه (دا) كتاب د بيع صرف (په بيان كي) دې.

تشريح:- علامه عيني فرمائيلي دى لكه څبيع صرف د بيع يو ډول دې.اود بيوع په انواعو كي بيع صرف ځكه مؤخر كړې شوې دې.چه په بيع صرف كي اود وصف ذكر روسته وي.په دې وجه د بيع صرف ذكر د بيوع په اقساموكي د ټولو نه په آخركي شوې دې.(بنايه ازبدرالدين عيني رحمه الله)

### د بيع صرف تعريف

قَالَ رَحِمَهُ اللهُ: الصَّرْفُ هُوَ الْبَيْعُ صرف هم بيع ده إِذَا كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْ عِوَضَيْهِ مِنْ جِنْسِ الْأَثْمَانِ كله چې ددې په دواړه عوضونوكي هر يو د ثمن دجنس ځني وى سُمِّيَ بِهِ لِلْحَاجَةِ إِلَى النَّقْلِ فِي بَدَلَيْهِ مِنْ يَدٍ إِلَى يَدٍ ددې عقد نوم صرف ځكه ايخودلې شوې دې.چه ددې په دواړه عوضونوكي لاس په لاس نقل كاوه اړتيا دې وَالصَّرْفُ هُوَ النَّقْلُ وَالرَّدُّ لُغَةً او صرف په لغت كي منتقل كاوه او ګرځولو ته وائى.

حل اللغة: ① عوضين-تثنيه د عوض،بدله-② الحاجة-ضرورت-③ يد-لاس-④ الرد-واپس كيدل

تشريح:- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي.چه بيع صرف هغه بيع ده.چه ددې دواړو عوض د ثمن د جنس ځني وي.ددې درې صورتونه دى.① سره زر د سرو زرو په عوض ② سپين زر د سپينوزرو په عوض ③ په دې دواړو كي يو دبل په عوض،

علامه مرغيناني رحمه الله ددې عقد، صرف نوم ايخودلو دوې (دوه) وجهې بيان كړې دى.① رومبئ وجه داده.چه د صرف لغوى معنى اړول،او منتقل كيدل دى.لكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿ثُمَّ انْصَرَفُوا صَرَفَ اللهُ قُلُوبَهُمْ﴾ يعنى بيا (پاسيدل) روان شو.الله تعالى ددوى زړونه اړولى دى.اوس چونكه ددې عقد دواړه عوضونه لاس پلاس منتقل كاوه او اړولو اړتيا راپيښيږي.په دې وجه ددې عقدنوم صرف كيخودې شو.

أَوْ لِأَنَّهُ لَا يُطْلَبُ مِنْهُ إِلَّا الزِّيَادَةُ يا ځكه چې په دې عقد سره صرف زياتوالې مقصود وى إِذْ لَا يُنْتَفَعُ بِعَيْنِهِ ځكه چې ددې د ذات نه نفع نشى اخستې وَالصَّرْفُ هُوَ الزِّيَادَةُ لُغَةً او په لغت كي صرف زياتوالى ته وائى كَذَا قَالَهُ الْخَلِيلُ هم دغه ډول خليل نحوى فرمائيلي دى وَمِنْهُ سُمِّيَتِ الْعِبَادَةُ النَّافِلَةُ صَرْفًا او هم ددې نه عبادت نافله ته صرف وئيلې شي.

حل اللغة: ① يطلب-طلبوى-② ينتفع-نفع اخلى-③ صرف-زياتوالې-④ الزيادة-زياتوالې

تشريح:- دويمه وجه داده.چه د خليل نحوى د بيان مطابق د صرف لغوى معنى زياتوالې دې.په دې وجه عبادت نافله ته صرف وائى.لكه چې د رسول هاشمى ﷺ فرمان دې. «من انتمى الى غير أبيه لا يقبل الله منه صرفاً ولا عدلاً» يعنى چاچه خپل پلار نه علاوه اړخ ته خپل ځان منسوب كړلو.الله تعالى نه دده نفل قبلوى.او نه فرض قبلوى.په دې حديث كي لفظ د صرف عبادت نافله لپاره استعمال شوې دې.او عبادت نافله هم د فرضو نه يو زياتى شئ دې.نو معلومه شوه.چه د صرف معنى زياتوالې دې.اود عقدصرف نه مطلوب هم زياتوالې دې.ځكه چې سره زر او سپين

زر دواړه داسې شيان دي چه ددې د ذات نه هيڅ نفع نشي اخستلې.ددې په خلاف غله، کپړې،او خر وغيره چې ددې د ذات نه نفع اخستې شي.په دې طريقه چې په غله باندې نس دکولې شي.اود کپړې نه د ستر کار اخستې شي.او خر د سوارلۍ يکار راځي.نو هرکله چې د سرو او سپينو زرو ذات غيرمنتفع به دې.نو ددې د تجارت نه مقصود به زياتوالې طلب کول وي.په دې طريقه چې د کره په بدله کې کهوټه ورکړې.ياد سوانچه شوي نه بغير په بدله کې سوانچه شوي واخلي.خکه که ددې دتجارت نه زياتوالې هم مقصود نه وي.نو عقدصرف به د فائدې نه خالي وي. حالانکه دعقد کاوه نه د عاقدينو مقصود څه ناڅه فائده ضرور وي.نو ثابته شوه.چه د عقدصرف نه زياتوالې مقصود وي.اود صرف لغوي معنی هم چونکه زياتوالې دې.په دې وجه ددې عقدنوم صرف کيخودې شو.

**د سرو او سپينو زرو خپل جنس سره برابر د بيع حکم**

> قَالَ فرمايي فَإِنْ بَاعَ فِضَّةً بِفِضَّةٍ أَوْذَهَبًا بِذَهَبٍ که يوکس سپين زر د سپينو زرو په عوض يا سره زر د سرو زرو په عوض خرڅ کړل. لَا يَجُوزُ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ نو جائز نه دی.مګر برابر برابر وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الْجَوْدَةِ وَالصِّيَاغَةِ اګرچه په کره والي او سوانچه کاوه کې مختلف وي.

**حل اللغة:** ① فضة-سپين زر-② الذهب-سره زر-③ الجودة-کره والي-④ الصياغة-قالب\سوانچه

**تشريح:-** مسئله داده.که يوکس سپين زر د سپينو زرو په عوض يا سره زر د سرو زرو په عوض خرڅ کړي.نودا عقدبه هغه وخت جائز وي چه د وزن په اعتبار سره دواړه عوض برابر وي.خکه چې په کره والي يا سوانچه کولوکې د دواړو عوضونو په مينځ کې توپير وي.په دې طريقه چې په دې دواړو کې يو عوض اعلی او سوانچه شوي وي او دوهم ددې په مقابله کې دومره اعلی او سوانچه شوي نه وي.حاصل داکه دواړه عوضونه په کره والي يا سوانچه کاوه کې مختلف وي.بيا هم د عقد دجواز لپاره په دواړه عوضونوکې برابري ضروري ده.

> لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي اَلذَّهَبُ بِالذَّهَبِ مِثْلًا بِمِثْلٍ چې سره د سرو زرو په عوض برابر برابر، وَزْنًا بِوَزْنٍ وزنا بوزن يَدًا بِيَدٍ لاس په لاس وَالْفَضْلُ رِبًا)(١) اَلْحَدِيث او زياتوالې سود دې وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبي کريم ﷺ فرمائيلي دي جَيِّدُهَا وَرَدِيئُهَا سَوَاءٌ (٢)چه ددې مالونو کره اوکهوټه برابر دي كَمَا قَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ اودا موږ په کتاب البيوع کې ذکرکړي دي.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله په دليل کې دوې (دوه) حديثونه پيش کړي دي.يودا چې هادي عالم ﷺ شپږ شيان (① سره زر② سپين زر ③ مالګه ④ چهوارې ⑤ غنم ⑥ اوربشې ) ذکر کاوه نه روسته فرمائيلي دي. «مثلاً بمثل وزناً بوزن وكيلاً بكيل يداً بيد والفضل ربوا» يعني دوې (دوه) خبرې ضروري دي.يوه داچه په موزوناتو کې د وزن په ذريعه اوپه مکيلاتو کې د کيل په ذريعه برابري وي.دويمه داچه په مجلس عقدکې عوضينو باندې قبضه اوکړې شي.اوکه په وزن يا کيل سره برابري اونکړې شوه.يا په مجلس کې قبضه اونکړې شوه.نودا به ربا،او حرام وي.ددې حديث نه ثابته شوه چه د اموال ربويه په بيع کې د عوضينو په مينځ کې مساوات او برابري شرط ده.او دوهم حديث دادې چه په اموال ربويه کې کره اوکهوټه دواړه برابر دي.يعني که يوعوض کره او بل کهوټه وي.نو بياهم مساوات ضروري دې.او کموالې زياتوالې حرام دې ددې حديث نه معلوميږي.چه شريعت اسلام دکره او کهوټه د توپير اعتبار نه دې کړې بلکه دواړو ته ئې مساوي درجه ورکړې ده.

**په بيع صرف کښې عوضينو باندې د قبضه شرطيت**

> قَالَ فرمايي وَلَابُدَّ مِنْ قَبْضِ الْعِوَضَيْنِ قَبْلَ الِافْتِرَاقِ اود جداکيدلو نه وړاندې په دواړه عوضونو باندې قبضه

(١) تقدم تخريجه في البيوع-

(٢) تقدم تخريجه في البيوع_



> کول ضروري ده لِمَا رَوَيْنَا دهغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړي دي وَلِقَوْلِ عُمَرَ رضي الله عنه اوخکه چې حضرت عمر رضي الله عنه فرمائيلي دي وَإِنِ اسْتَنْظَرَكَ أَنْ يَدْخُلَ بَيْتَهُ که هغه ستا نه خپل کورته د داخليدو مهلت اوغواړي فَلَا تُنْظِرْهُ (١) نوته هغه ته مهلت مه ورکوه وَلِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنْ قَبْضِ أَحَدِهِمَا اوخکه چې په دواړو عوضونوکې په يو باندې قبضه کول خکه ضروري ده لِيَخْرُجَ الْعَقْدُ عَنِ الْكَالِئِ بِالْكَالِئِ چې عقد د پور په عوض د پور بيع نه خارج شي ثُمَّ لَابُدَّ مِنْ قَبْضِ الْآخَرِ تَحْقِيقًا لِلْمُسَاوَاةِ بيا د مساوات ثابتولو لپاره په دوهم عوض باندې قبضه کول ضروري ده فَلَا يَتَحَقَّقُ الرِّبَا چې ربا متحقق نشي وَلِأَنَّ أَحَدَهُمَا لَيْسَ بِأَوْلَى مِنَ الْآخَرِ او خکه چې په دواړو عوضونوکې يو د بل نه غوره (بهتر) نه دې فَوَجَبَ قَبْضُهُمَا نو په دواړو باندې قبضه کول ضروري ده سَوَاءٌ كَانَا يَتَعَيَّنَانِ برابره ده.که دواړه عوضونه متعين کيږي كَالْمَصُوغِ لکه سوانچه شوي شئ أَوْلَا يَتَعَيَّنَانِ اوکه نه متعين کيږي كَالْمَضْرُوبِ لکه سکه أَوْ يَتَعَيَّنُ أَحَدُهُمَا وَلَا يَتَعَيَّنُ الْآخَرُ يا په دې کې يو متعين وي.او بل متعين نه وي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا خکه چې کوم حديث موږ روايت کړي دې.هغه مطلق دې.

**حل اللغة:** ① الاستنظار-طلب د مهلت-② المساواة-برابري-③ الكالئ-قرض-④ المضروب-سکه

**تشريح:-** د ټولو عالمانو اتفاق دې.چه په عقدصرف کې دواړو عوضونو باندې د بدن په اعتبار سره د جداکيدلو نه وړاندې وړاندې قبضه کول ضروري دی.دليل① منقول يعني «يداً بيد.....حديث» وړاندې تيرشوې دې.د «يداً بيد» معنی لاس پلاس،يا يوځائې ياد نغد په نغد ده.هم دې ته تقابض وئيلې شي.يعني يو ترېله قبضه کول.بهرحال لفظ «يداً بيد» په دې باندې دلالت کوي.که د سرو زرو بيع د سرو زرو په عوض يا د سپينو زرو بيع د سپينو زرو په عوض وي.يعني عقدصرف وي.نو په عوضين باندې د جلا کيدلو نه وړاندې قبضه کول شرط دي.او② د بخاري شريف حديث دې. «لا تبيعوا منها غائباً بناجز» يعني په اموال ربويه کې غائب د ناجز په عوض مه خرڅوئ.يعني د اموال ربويه بيع داسې مه کوئ.چه يو عوض په مجلس کې موجود وي.او يوعوض موجود نه وي.خکه چې په دې صورت کې په مجلس کې دننه په يو عوض خو قبضه اوشي.خو دوهم عوض (کوم چې موجود نه دې) باندې قبضه نه کيږي.حالانکه په دواړه عوضونو باندې په مجلس کې دننه قبضه کول شرط دی.ددې حديث نه هم د جلا کيدلو نه وړاندې وړاندې په دواړه عوضونو باندې د قبضه شرطيت ثابتيږي.③ دحضرت عمر رضي الله عنه قول هم ددې شهادت کوي.په موطا امام مالك رحمه الله کې دا قول په دې الفاظو سره نقل دې. «قال لا تبيعوا الذهب بالذهب إلا مثلاً بمثل ولا تبيعوا الورق بالذهب أحدهما غائب والآخر ناجز وإن استنظرك أن يلج بيته فلا تنظره إلا يداً بيد هات وهات إني أخشى عليكم الربوا» حضرت عمر رضي الله عنه فرمائي.چه سره زر د سرو زرو په عوض مه خرڅوئ.مګر برابر برابر،او سپين زر د سرو زرو په عوض په داسې حال کې مه خرڅوئ.چه يو عوض موجود نه وي.او دوهم موجود وي.اوکه ستانه (ستا ملګرې) ددې خبرې مهلت اوغواړي.چه دې خپل کور ته داخل شي.(اوغيرموجود عوض راوړي) نوده ته ددې مهلت مه ورکوه.البته که معامله د نغدو اود راکړه او واخله په طريقه وي.(نو هيڅ باک نشته)(او ددې مهلت نه ور کاوه وجه داده چه) زه په تاسو په رباء کاوه يريږم.يعني ماته دا يره ده.چه د کوره پورې د تلو راتلو په تاخير سره چې د قبضې په ور کاوه کې کوم تاخير اوشي.هغه رباء او سود نشي.خکه زما رائې داده.چه ده ته دومره مهلت هم مه ورکوه.ددې نه هم دا ښکاره کيږي.چه د جداکيدلو نه وړاندې په عوضينو باندې قبضه کول ضروري ده.④ عقلي دليل دادې.چه دعقدصرف په صورت کې په يوعوض باندې قبضه کول خکه ضروري دی.چه د پور په عوض د پور بيع لازم نشي.يعني د پور بيع د پور په عوض لازم نشي.حالانکه د پور بيع د پور په عوض ممنوع ده.او په دوهم عوض باندې قبضه کول ضروري دی.چه د دواړو په مينځ کې برابري او مساوات متحقق شي.او رباء لازم

(١) أخرجه مالک في الموطأ في البيوع رقم ٣٤)_

نشي. ځکه چې په کوم عوض باندې قبضه اوکړې شوه. هغه خو نغد شو. او په کوم چې قبضه نه ده شوې، هغه پور شو. اود «النقد خير من النسيئة» قاعده مشهور ده. چه نغد د پور نه غوره دې. ګویا نغدو ته په قرضو باندې یو فضیلت حاصل دې. اویو عوض د بل عوض نه غوره کیدل، ددې نوم رباء دې. نو چونکه په یو عوض باندې یو ډول کول، او په بل باندې قبضه نه کاوه په صورت کې رباء لازمیږي. په دې وجه د مساوات او برابری پیدا کاوه لپاره دوهم عوض باندې هم قبضه کول ضروری دی. ⑤ بل عقلی دلیل دادې. چه په بیع صرف کې دواړه عوضونه چونکه په ثمنیت کې برابر دی. په دې وجه یو عوض ته په بل عوض باندې هیڅ ترجیح حاصل نه ده. او هر کله چې یو عوض په بل عوض باندې افضل او غوره نه دې. نود ترجیح بلامرجح اشکال ختمولو لپاره په دواړه عوضونو باندې قبضه کول هم ضروری دی.

علامه مرغیناني ﷫ فرمائی. چه په بیع صرف کې دواړو عوضونو باندې دقبضه کاوه حکم عام دې. که دواړه عوضونه داسې وی. کوم چې په متعین کاوه سره متعین کیږي. لکه سوانچه شوې شیان مثلاً زیورات، لوخی وغیره، اوکه دواړه عوضونه داسې وی. چه په متعین کاوه سره نه متعین کیږي. لکه مثلاً دراهم او دنانیر. اوکه په دې کې یو عوض داسې وی. چه په متعین کولو سره متعین کیږي. او یوعوض داسې وی. چه په متعین کولو سره نه متعین کیږي. دلیل دادې. چه «الذهب بالذهب..... الخ» حدیث مطلق دې. چه مضروب او مصوغ (یعنی سوانچه شوی او سکو) دواړو ته ګډ دې.

> وَلِأَنَّهُ إِنْ كَانَ يَتَعَيَّنُ او خکه که دا متعین کیږي فَفِيهِ شُبْهَةُ عَدَمِ التَّعْيِينِ نو بیا هم په دې کې د نه متعین کیدو شبه ده لِكَوْنِهِ ثَمَنًا خِلْقَةً ځکه چې دا مورزاده (پیدائشي) طور باندې ثمن دې فَيُشْتَرَطُ قَبْضُهُ اعْتِبَارًا لِلشُّبْهَةِ فِي الرِّبَا نود شبهة الربوا اعتبار کاوه سره په دې باندې قبضه کول شرط دی وَالْمُرَادُ مِنْهُ الِافْتِرَاقُ بِالْأَبْدَانِ اود افتراق نه مراد په بدن سره جدا کیدل دی حَتَّى لَوْ ذَهَبَا عَنْ الْمَجْلِسِ تردې که دواړه عقد کونکی د مجلس نه پاسی يَمْشِيَانِ مَعًا فِي جِهَةٍ وَاحِدَةٍ او په یو سمت (طرف) روان شی أَوْ نَامَا فِي الْمَجْلِسِ یا دواړه په مجلس کې اوده شی أَوْ أُغْمِيَ عَلَيْهِمَا یا په دواړو باندې بې هوشی راشی لَا يَبْطُلُ الصَّرْفُ نو عقدصرف نه باطلیږي لِقَوْلِ ابْنِ عُمَرَ وَإِنْ ځکه ابن عمر ﷛ فرمایي وَثَبَ مِنْ سَطْحٍ فَثِبْ مَعَهُ که هغه د چت نه راټوپ کړو. نو ته هم هغه سره راټوپ کړه وَكَذَا الْمُعْتَبَرُ مَا ذَكَرْنَاهُ فِي قَبْضِ رَأْسِ مَالِ السَّلَمِ اود سلم په راس المال باندې قبضه کولوکې هم هغه معتبر دی. کوم چې موږ ذکرکړي دی بِخِلَافِ خِيَارِ الْمُخَيَّرَةِ لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالْإِعْرَاضِ فِيهِ په خلاف د خیار مخیره، ځکه چې په اعراض سره ددې خیار باطلیږي.

حل اللغة: ① خلقة-مورزاده (پیدائشي)-② الربا-سود-③ جهة-طرف-④ الوثب-ټوپ ⑤ سطح-چت-⑥ الخيار-اختیار-⑦ الافتراق-جدا کیدل-⑧ الاعراض-ډډه کول

تشریح:- دا عبارت د یو اعتراض خواب دې. اعتراض دادې. چه د قبضه نه بغیر د مضروب (یعنی سکې دراهم او دنانیر) بیع د مضروب په عوض ځکه صحیح نه ده. چه په دې کې د پور په عوض د پور بیع لازمیږي. خومصوغ یعنی سوانچه شوی شئ د سوانچه شوی شئ په عوض د قبضه نه بغیر خرڅولوکې دا خرابی نه لازمیږي. ځکه چې سوانچه شوې شئ په متعین کولو سره متعین کیږي. نود،، بیع المضروب بالمضروب،، په صورت کې بیع د پور په عوض د پور بیع نه دخارجولو لپاره اود مساوات پیدا کاوه لپاره په دواړه عوضونو باندې قبضه کول ضروری ده. خوپه،، بیع المصوغ بالمصوغ،، کې چونکه دا خرابی نه لازمیږي. په دې وجه په دې صورت کې قبضه ضروری کیدل پکار نه دی.

خواب: ددې خواب دادې. چه د سرو زرو او سپینو زرو نه سوانچه شوې شئ لوخی، زیورات وغیره، اګرچه په متعین کاوه سره متعین کیږي. خوددې باوجود په دې کې دنه معین کیدلو شبه ده. ځکه چې دا عوض مورزاده (پیدائشي) طورباندې ثمن دې. یعنی په اصل کې سپین زر او سره زر دی. نو په دې به قبضه کول شرط وی. ځکه چې په رباء او سود کې چې لکه څنګه حقیقت رباء معتبر ده. یعنی حقیقت رباء حرام ده. دغه ډول شبهة الرباء هم



معتبر او حرام ده.

علامه مرغیناني ﷫ فرمائی. چه په متن کې په «قبل الافتراق» کې د،، افتراق،، نه مراد افتراق بالابدان دې. یعنی د عاقدینو خپل بدن سره جداکیدل مراد دی. که عاقدین د مجلس عقدنه پاسی. او دواړه په یو اړخ باندې روان شی. یا دواړه په مجلس عقد کې اوده شی. یا په دواړو باندې بې هوشی راشي. نو په دې صورتونوکې چونکه افتراق بالابدان نه دې موجود شوې. ځکه به په ذکرشوی درې واړه صورتونوکې عقدصرف باطل نه وی. ددې تائید د حضرت عبدالله بن عمربن الخطاب ﷛ (جان نثار رسول ﷺ، صاحبزادۀ عمرفاروق ﷛) د قول نه هم کیږي. د مبسوط په حواله سره علامه ابن الهمام ﷫ پوره واقعه داسې ذکرکړې ده.

ابوجبله ﷛ وائی. چه ما د عبدالله بن عمر ﷛ نه پوښتنه اوکړو. ما اووئیل چه موږ خلګ ملك شام ته خو. او موږ سره چې کوم سپین زر دی. دا په وزن کې هم درنې دی. او رائج الوقت هم دی. او دوی سره چې کوم سپین زر دی. هغه سپك هم دی. او په بازار کې هم ددې رواج کم دې. نو آیا موږ خلګ ددوی د سپینو زرو لس برخې (حصې) د نه نیمو برخو په عوض واخلو؟ ابن عمر ﷛ اووئیل. داسې مه کوئ. البته خپل سپین زر، د سرو زرو په عوض خرڅوه. او ددوی سپینو زر د سرو زرو په عوض اخله. او ددوی نه مه جداکیږه. تردې چې (خپل حق) وصول کړې. اوکه دې د چهت نه راکښته شی. نو دده سره ته هم کوزشه.

ددې واقعې نه یوڅو خبرې معلومې شوې. ① یوه داکه سپینو زر د سپینو زرو په عوض خرڅ کړې شی. نو په دې کې کمې زیاتې جائز نه دې. خوکه په سپینو زرو او سرو زرو کې لین دین اوکړې شو. نو کمې زیاتې جائز دې. ② دویمه خبره دامعلومه شوه. چه په عوضینو باندې د قبضې کاوه نه بغیر جلا نشي ③ دریمه خبره دا معلومه شوه. چه د افتراق نه مراد افتراق بالابدان دې. ځکه چې عبدالله بن عمر ﷛ فرمائی. که د قبضه نه وړاندې ستا انډیوال د چهت نه زمکې ته راکوزشی. چه افتراق بالابدان اوشی. او عقد صرف باطل شی. نوته هم دده سره راکوزشه. چه افتراق بالابدان اونشی. او عقدصرف باطل نشی. بهرحال دا قول په دې خبره باندې دلالت کوی. چه د افتراق نه مراد افتراق بالابدان دې.

علامه مرغیناني ﷫ فرمائی. چه دا کوم اووئیلی شو،، چه دعقدسلم په صورت کې د افتراق نه وړاندې په راس المال باندې قبضه کول ضروری دی،، نو دلته کې هم افتراق بالابدان مراد دې. ددې په خلاف که میره خپلې ښځې ته د طلاق اختیار ورکړو. اودا د مجلس نه پاسیدله. یا خپل میره سره هم په هغه اړخ روانه شوه. کوم اړخ ته چې دې روان دې. یا په بل څه کار کښې مشغوله شوه. نو ددې اختیار به باطل وی. اګرچه تفرق بالابدان موجود نشی. ځکه چې د مخیره ښځې اختیار په اعراض سره باطلیږي. او په ذکر شوی صورتونوکې اعراض موجود دې. ځکه به په ذکرشوی صورتونوکې د مخیره اختیار باطل وی. اګرچه تفریق بالابدان موجود نشی. حاصل داچه د مخیره ښځې په خیارکې اعراض معتبر دې. تفرق بالابدان معتبر نه دې. اوپه عقدصرف کې په عوضینو او راس المال باندې قبضه کولوکې تفرق بالابدان معتبر دې. یعنی د تفرق بالابدان نه وړاندې قبضه صحیح ده. اود تفرق بالابدان نه روسته به ټیك نه وی.

### د سرو زرو، سپینو زرو سره تفاضلاً د بیع حکم

> وَإِنْ بَاعَ الذَّهَبَ بِالْفِضَّةِ اوکه سره زر د سپینو زرو په عوض خرڅ کړی جَازَ التَّفَاضُلُ نو کمې زیاتې جائز دې لِعَدَمِ الْمُجَانَسَةِ ځکه چې دواړه یو جنس نه دې وَوَجَبَ التَّقَابُضُ اوپه مجلس کې یو تربله (لاس پلاس) قبضه واجب ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الذَّهَبُ بِالْوَرِقِ رِبًا (۱) ځکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. چه سره د سپینو زرو په عوض سود دې إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ مګر لاس په لاس (سود نه دې). فَإِنْ افْتَرَقَا فِي الصَّرْفِ قَبْلَ قَبْضِ الْعِوَضَيْنِ أَوْ أَحَدِهِمَا بیا که عاقدین په عقدصرف کې په

(۱) تقدم تخريجه في الربا_

عوضینو باندې د قبضه کاوه نه وړاندې یا په یو عوض باندې د قبضه کاوه نه وړاندې جلا شو بَطَلَ الْعَقْدُ نو عقد به باطل وی لِفَوَاتِ الشَّرْطِ وَهُوَ الْقَبْضُ ځکه چې شرط یعنی قبضه فوت شوې ده.

**حل اللغة:** ① الذهب-سره زر-② الفضة-سپین زر-③ الورق-سپین زر-④ الفوات-فوت کیدل

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.که سره زر د سپینو زرو په عوض خرڅ کړې شو.نو په دې کې تفاضل ( یعنی د یو کم کیدل اود بل عوض زیات کیدل) جائز دی.اود جواز وجه اتحاد جنس نه موجودیدل دی. ځکه چې د اتحاد جنس نه موجودیدلو په صورت کې په کمی‌زیاتی سره خرڅول جائز وی.البته په مجلس د عقدکې دواړو عوضونو باندې لاس پلاس قبضه واجب ده.ځکه چې د الله پاك رسول ﷺ فرمائیلی دی. چې سره زر د سپینو زرو په عوض خرڅول ربا ده.یعنی حرام دی.خو په یوځانې ورکولو سره یعنی لاس پلاس جائز دی.اوکه په عقد صرف کې عوضین یا په احدالعوضین باندې د قبضه کاوه نه وړاندې عاقدین جلا شو.نو عقد صرف به باطل وی.ځکه چې د عقدصرف صحیح کیدل پاته ساتلو لپاره چې کوم شرط وو.یعنی په عوضینو باندې قبضه کول،نودا شرط چونکه فوت شوې دې.ځکه به عقدصرف باطل وی.او چونکه د قبضه کاوه نه بغیر دمجلس نه د عاقدینو جلا کیدل عقدصرف باطلوی.په دې وجه عقدصرف کې نه د خیارشرط لګول صحیح دی.اونه د میعاد شرط لګول صحیح دی.د خیارصورت دادې.چه احدالعاقدین آوونیل.چه مادا دنانیر ددې دراهمو په عوض په دې شرط واخستل.چه ماته دري ورځې خیار دې.اود میعاد صورت دادې.چه مادا دنانیر ددې دراهمو په عوض په دې شرط واخستل.چه زه به ذکرشوی دراهم یوه میاشت روسته درکوم.په دې دواړو صورتونو کې دعدم جواز وجه داده.چه خیارشرط چونکه د،،من لاخیار له،، لپاره ملك ثابتول منع کوی.ځکه به په احدالعوضین باندې د،،من لاخیارله،،ملك ثابت نه وی.او هرکله چې دده ملك ثابت نشو.نو دده لپاره به په دې عوض باندې قبضه کول هم واجب نه وی.بهرحال د خیارشرط په صورت کې قبضه مستحق یعنی واجب شوې نه ده.اود میعاد شرط لګولو سره واجب شوې قبضه فوت کیږی.نو په خیارشرط سره قبضه نه واجبیږی.اود میعاد شرط سره واجب شوې قبضه فوت کیږی.حالانکه په عقدصرف کې د جلا کیدلو نه وړاندې قبضه کول شرط دی.

وَهٰذَا لَا يَصِحُّ شَرْطُ الْخِيَارِ فِيهِ او هم په دې وجه په عقدصرف کې د خیار شرط لګول صحیح نه دی وَلَا الْأَجَلُ اونه د میعاد ( شرط لګول صحیح دی). لِأَنَّ بِأَحَدِهِمَا لَا يَبْقَى الْقَبْضُ مُسْتَحَقًّا ځکه چې په دې دواړو کې په یو سره د قبضې استحقاق نه پاتې کیږی وَبِالثَّانِي يَفُوتُ الْقَبْضُ الْمُسْتَحَقُّ اود ثانی نه د قبضې استحقاق فوت کیږی إِلَّا إِذَا أَسْقَطَ الْخِيَارَ فِي الْمَجْلِسِ خوکه په مجلس کې خیار ساقط کړې شو فَيَعُودُ إِلَى الْجَوَازِ نو عقد به جواز اړخ ته واپس کیږی لِارْتِفَاعِهِ قَبْلَ تَقَرُّرِهِ ځکه چې فساد د مستحکم کیدو نه وړاندې مرتفع شوې دې وَفِيهِ خِلَافُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او په دې کې د امام زفر ﷫ اختلاف دې.

**حل اللغة:** ① الاجل-نیټه-② اسقط-ساقط کړو-③ الارتفاع-پورته کیدل-④ تقرر-مستحکم کیدل

**تشریح:**- په دې وجه عقدصرف کې نه د خیارشرط لګول ټیك دی.اونه د میعاد شرط لګول صحیح دی.البته په عقدصرف کې خیارعیب او خیاررؤیت دواړه ثابتیږی.خو خیار رؤیت په معین عوض کې ثابتیږی.په دین کې نه ثابتیږی.

صاحب دهدایه ﷫ فرمائی.که په عقدصرف کې نې د خیار، شرط اولګولو.خو په مجلس د عقدکې ،،من له الخیار،،دا ساقط کړلو.نو زموږ په نیز به داعقدجائز وی.اود امام زفر ﷫ په نیز جائز نه دې. زموږ دلیل دادې.چه د خیارشرط په وجه عقدفاسد شوې دې.او کوم شی چې فاسد منعقدشی.هغه بیا واپس نه جائزکیږی. بلکه فاسد پاتې کیږی.په دې وجه د خیار ساقطولو باوجود به دا عقدجائز نه وی.

### په ثمن صرف کښې د قبضه نه وړاندې د تصرف حکم

قَالَ فرمایي وَلَا يَجُوزُ التَّصَرُّفُ فِي ثَمَنِ الصَّرْفِ قَبْلَ قَبْضِهِ اود بیع صرف په ثمن کې د قبضه کولونه وړاندې تصرف کول



جائز نه دی حَتّٰى لَوْبَاعَ دِينَارًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ تردې که یو دینار ئې دلس درهمو په عوض خرڅ کړو وَلَمْ يَقْبِضِ الْعَشَرَةَ او په لس درهمو ئې قبضه اونکړه حَتّٰى اشْتَرٰى بِهَا ثَوْبًا تردې چې ددې لس درهمو په عوض ئې کپړه واخستله فَالْبَيْعُ فِي الثَّوْبِ فَاسِدٌ نود کپړې بیع فاسد ده لِأَنَّ الْقَبْضَ مُسْتَحَقٌّ بِالْعَقْدِ حَقًّا لِلّٰهِ تَعَالٰى ځکه چې د عقدصرف په وجه قبضه د الله تعالی حق ( واجب) جوړشوې دې وَفِي تَجْوِيزِهِ فَوَاتُهُ حالانکه دداسې تصرف جائز ګرځولوکې ددې فوت کیدل لازمیږی.

**حل اللغة:** ① دینار-اشرفی-② دراهم-روپی-③ ثوب-جامه-④ تجویز-جائز کول

**تشریح:**- مسئله داده.چه د بیع صرف په دواړو عوضونوکې په یوعوض کې هم د قبضه نه وړاندې تصرف کول جائز نه دی.هم دا ابو الحسین قدوری ﷫ فرمائی.چه د بیع صرف په ثمن کې د قبضې نه وړاندې تصرف کول جائز نه دې.او چونکه ددې په دواړو عوضونوکې هریو ثمن وی.لهذا په دواړو کې د قبضې نه وړاندې تصرف کول جائز نه دې.په دې باندې ئې یوه مسئله تفریع کړې ده.فرمائی که یوکس یو دینار د لس درهمه په عوض خرڅ کړلو.او په لس درهمه باندې ئې دقبضه کاوه نه بغیر ددې په عوض یو تهان د کپړې واخستلو.نود کپړې د تهان بیع فاسد ده.ځکه چې د یو دینار بیع د لس درهمه په عوض بیع صرف ده.او په بیع صرف کې د الله تعالی د حق په وجه قبضه کول واجب دی.هم دا وجه ده.چه د عاقدینو په ساقطولو سره قبضه نه ساقطیږی.یعنی که دواړه عاقدین د بیع صرف په عوضونو باندې د قبضې په ساقطولو باندې اتفاق اوکړی.نو ددوی داتفاق په وجه قبضه نه ساقطیږی.بلکه پخپل حال به واجب پاتې وی.ځکه چې د قبضې وجوب ددوی حق نه دې.بلکه د الله تعالی حق دې.اود الله تعالی حق ځکه دې.چه د قبضه نه کاوه په صورت کې ربا لازمیږی.او رباء حرام ده.او حرام کیدل د الله تعالی حق دې.د بندګانو حق نه دې.بهرحال ثابته شوه.چه په عقدصرف کې د قبضه وجوب د الله تعالی حق دې.او په لس درهمو باندې د قبضې نه وړاندې ددې په عوض د کپړې تهان اخستلو کې د الله تعالی ددې حق فوت کیدل لازمیږی.اود الله تعالی حق فوت کول قطعاً ناجائز دی.په دې وجه د قبضه کاوه نه بغیر د لس درهمو په عوض د کپړې تهان اخستل ناجائز دی.

وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يَجُوزَ الْعَقْدُ فِي الثَّوْبِ او مناسبب وه.چه د کپړې بیع هم جائز وه كَمَا نُقِلَ عَنْ زُفَرَ لکه څنګه چې د امام زفر ﷫ نه منقول دی لِأَنَّ الدَّرَاهِمَ لَا تَتَعَيَّنُ ځکه چې دراهم نه متعین کیږی فَيَنْصَرِفُ الْعَقْدُ إِلٰى مُطْلَقِهَا نود کپړې بیع به مطلق دراهمو اړخ ته واپس کیږی وَلٰكِنَّا نَقُولُ: الثَّمَنُ فِي بَابِ الصَّرْفِ مَبِيعٌ خو موږ وایو.چه ثمن په عقدصرف کې مبیع وی لِأَنَّ الْبَيْعَ لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ ځکه چې د بیع لپاره مبیع کیدل ضروری دی وَلَا شَيْءَ سِوَى الثَّمَنَيْنِ حالانکه ( دلته کې ) د دوې (دوه) ثمنونو نه علاوه هیڅ شئ نشته فَيُجْعَلُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَبِيعًا نود عدم اولویت ( غوره والی) په وجه به په دې دواړوکې هر یو مبیع ګرځولې شی لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ وَبَيْعُ الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يَجُوزُ اود مبیع بیع د قبضه نه وړاندې جائز نه ده.

**تشریح:**- علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.د قیاس تقاضا داده.چه دقبضې نه وړاندې د ذکرشوی لس درهمو په عوض کپړه اخستل جائز وی.لکه څنګه چې دا د امام زفر ﷫ نه هم نقل دی.ځکه چې دراهم د متعین کاوه باوجود نه متعین کیږی.نود کپړې بیع به مطلق دراهمو اړخ ته واپس کیږی.که یوکس کپړه واخستله.اودا ئې د بیع صرف بدل اړخ ته منسوب نکړله.بلکه مطلق دراهمو اړخ ته ئې منسوب کړله.نودا جائز دی.نوهم دغه ډول که د بیع صرف بدل اړخ ته ئې منسوب کړې وی.نو بیاهم جائز کیدل پکاروو.ځکه چې دراهم نه متعین کیږی.اګرچه دې اړخ ته اشاره ولې نه وی شوې.نو معلومه شوه.چه دکپړې بیع، د بیع صرف بدل ( یعنی لس درهم) اړخ ته منسوب کول او مطلق ساتل دواړه برابر دی.

خواب* زموږ د اړخه ددې خواب دادې.چه عقدصرف عقدبیع دې.ځکه چې په عقدصرف کې مبادله د مال بالمال کیږی.اوچونکه د مبادله،،مال بالمال،، نوم بیع ده.ځکه به عقدصرف هم عقدبیع وی.او بیع په مبیع او ثمن دواړو باندې مشتمل وی.حالانکه دلته کې دواړه عوضونه ثمن دی.ځکه چې دینار هم د ثمن د قبیلې څنې دې.او دراهم

هم د ثمن د قبیلې څخه دی.اوهیڅ یو عوض ته په مبیع جوړولو باندې څه مرجح موجود نه دې.ځکه به په دواړو کې هریو عوض من وجه مبیع وی.او،، من وجه،، به ثمن وی.لکه څنګه چې په بیع مقایضه کې دی.یعنی په بیع العرض بالعرض کې هریو من وجه مبیع او من وجه ثمن وی.او په مبیع باندې د قبضه کاوه نه وړاندې په بیع تصرف کول جائز نه دی.په دې وجه د عقدصرف عوض یعنی په لس درهمو کې د قبضه نه وړاندې په دې کې جائز نه دی.که څوک اعتراض اوکړی.چه دعقد صرف عوض که من وجه مبیع دې.نو من وجه ثمن هم دې.اود قبضه نه وړاندې په ثمن کې تصرف کول جائز دی.نود عقدصرف عوض یعنی په لس درهمو کې هم د قبضه نه وړاندې تصرف کول جائز کیدل پکار وو؟ ددې ځواب دادې.چه د ثمن کیدلو تقاضا داده.چه د قبضه نه وړاندې صرف په عوض کې تصرف کول جائز وی.اود مبیع کیدلو تقاضا داده.چه د قبضه نه وړاندې تصرف جائز نه وی.نو هرکله ء په جواز اوعدم جواز کې شك پیدا شو.نود شك په وجه به تصرف کول جائز نه وی.

وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَةِ كَوْنِهِ مَبِيعًا أَنْ يَكُونَ مُتَعَيِّنًا او ددې په مبیع کیدلو سره متعین کیدل نه لازمیږی كَمَا فِي الْمُسْلَمِ فِيهِ لکه څنګه چې په مسلم فیه کې دی.

**تشریح:-** دا عبارت د یو سوال ځواب دې.سوال دادی.چه هرکله د بیع صرف دواړه بدل من وجه مبیع دې.نودا متعین کیدل پکار دی.ځکه چې مبیع متعین وی.حالانکه تاسو ددې د متعین کاوه قائل نه یئ؟ ځواب*ددې ځواب دادې.چه د یوځیز مبیع کیدل، ددې متعین کیدلو ته مستلزم نه وی.مثلاً مسلم فیه بالاتفاق مبیع وی.خو متعین کیږی نه.بلکه د مسلم الیه په ذمه واجب وی.

### د سرو او سپینو زرو خپل مینځ کښې په اندازه سره د بیع حکم

قَالَ وَيَجُوزُ بَيْعُ الذَّهَبِ بِالْفِضَّةِ مُجَازَفَةً او سره زر د سپینو زرو په عوض اندازې سره خرڅول جائز دی لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ غَيْرُ مَشْرُوطَةٍ فِيهِ ځکه چې په خلاف جنس کې برابری شرط نه ده وَلَكِنْ يُشْتَرَطُ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ خو په مجلس کې قبضه کول شرط دی لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې.

**حل اللغة:** ① المجازفة-اندازه-② المساواة-برابری-③ یشترط-شرط کولې شی-④ الربوا-سود

**تشریح:-** د سرو زرو بیع د سپینو زرو په عوض اود سپینو زرو بیع د سرو زرو په عوض اندازې سره جائز ده.که په وزن کې دواړه عوض برابر وی.او که کم وی.یا یو کم او بل زیات وی.ځکه چې د اختلاف جنس په صورت کې برابری شرط نه ده.لکه څنګه چې د عباده بن صامت ﷺ حدیث «إذا اختلف هذه الأصناف فبيعوا كيف شئتم إذا كان يداً بيد» شاهد دې.نو هرکله چې د اختلاف جنس په صورت کې د دواړو عوضونو برابر کیدل شرط نه دی.نو په اندازه او اټکل سره خرڅول به هم حرام نه وی.البته د،، افتراق بالابدان،، نه وړاندې قبضه کول شرط دی.او ددې نقلی او عقلی دلیلونه وړاندې تیرشوی دی.د نقلی دلیل نه مراد «الذهب بالورق رباء إلا هاء وهاء» حدیث دې.یعنی سره زر د سپینو زرو په عوض خرڅول رباء ده.خو لاس پلاس سره جائز ده.یعنی که یو تربله قبضه اوشی.نو جائز ده.

بِخِلَافِ بَيْعِهِ بِجِنْسِهِ مُجَازَفَةً ددې په خلاف اندازې سره ددې بیع ددې دجنس په عوض لِمَا فِيهِ مِنْ احْتِمَالِ الرِّبَا ځکه چې په دې کې د ربا، احتمال دې.

**تشریح:-** په خلاف د دې مسئلې که سره زر ددې د جنس یعنی د سرو زرو په عوض یا سپین زر د سپینو زرو په عوض په اندازه او اټکل خرڅ کړل.نو جائز نه دی.ځکه چې په دې کې د رباء احتمال دې.یعنی کیدای شی.چه یوعوض کم او بل عوض زیات وی.او وړاندې باربار تیرشوی دی.چه احتمال رباء هم د حقیقت رباء پشان حرام دې.په دې وجه د سرو زرو یا سپینو زرو بیع پخپل جنس سره اندازې سره حرام او ناجائز دی.

### وینځه سره ددې د غاړې امیل نه په نصف نغد قیمت باندې د خرڅولو حکم

قَالَ فرمایی وَمَنْ بَاعَ جَارِيَةً قِيمَتُهَا أَلْفُ مِثْقَالٍ فِضَّةٍ یو سړی یوه وینځه چې ددې قیمت یو زر مثقال سپین زر



وَفِي عُنُقِهَا طَوْقُ فِضَّةٍ او چې ددې په غاړه کې د سپینو زرو یو امیل (هار) دې قِيمَتُهُ أَلْفُ مِثْقَالٍ بِأَلْفَيْ مِثْقَالِ فِضَّةٍ چې ددې قیمت هم یو زرمثقال دې دا ئې د دوې (دوه) زرو مثقاله سپینو زرو په عوض خرڅه کړله وَنَقَدَ مِنَ الثَّمَنِ أَلْفَ مِثْقَالٍ او مشتری یو زرمثقال ثمن نغد اداکړل ثُمَّ افْتَرَقَا فَالَّذِي نَقَدَ ثَمَنُ الْفِضَّةِ بیا دواړه جلا شو.نو کوم څه چې نغد اداکړې دی.هغه د سپینو زر د امیل ثمن دی لِأَنَّ قَبْضَ حِصَّةِ الطَّوْقِ وَاجِبٌ فِي الْمَجْلِسِ ځکه چې د امیل په برخه باندې قبضه کول په دې مجلس کې واجب دی لِكَوْنِهِ بَدَلَ الصَّرْفِ وَالظَّاهِرُ مِنْهُ الْإِتْيَانُ بِالْوَاجِبِ ځکه چې دا د صرف بدل دې.د بائع د اړخه ښکاره هم دا ده.چه ده به واجب اداکړی وی.

**حل اللغة:** ① الجارية-وینځه-② طوق-امیل-③ النقد-نغدې-④ الاتيان-ادا کول

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوکس یوه وینځه چې ددې قیمت زر مثقاله سپین زردی.او ددې په غاړه کې د سپینو زرو یو امیل (هار) دې.چه ددې قیمت هم زرمثقاله دې.دا دواړه ئې د دوې (دوه) زره مثقاله سپینو زرو په عوض خرڅ کړل.او مشتری په ثمن کې زر مثقاله سپین زر نغد ادا کړل.بیا دواړه عقدکونکی جلا شو.نو کوم چې ده ادا کړی دی.دا به د سپینو زرو د امیل ثمن شمارلې کیږی.

دلیل دادې.چه په دې عقدکې زرمثقاله سپین زر د وینځې ثمن دې.او زرمثقاله سپینو زر د امیل ثمن دې.نود امیل او زرمثقاله سپینو زرو په مینځ کې مبادله بیع صرف دې.اود وینځې او زرمثقاله سپینو زرو په مینځ کې مبادله بیع صرف نه دې.او وړاندې تیرشوی دی، چې د بیع صرف په عوضینو باندې په مجلس کې قبضه کول د حق شرع په وجه واجب دی.نود امیل په ثمن باندې په مجلس کې قبضه کول د حق شرع په وجه واجب دی.اود وینځې د برخې (حصې) په ثمن باندې قبضه کول واجب نه دی.اود مسلمانانو ښکاره حال دادې. چې دوی خپله ذمه فارغولو لپاره اول واجب اداکوی.او په دې عقدکې چونکه بائع هم مسلمان دې.په دې وجه ښکاره حال هم دادې.چه ده به واجب اداکړې وی.او هرکله چې ده واجب اداکړل.نودا مثقاله سپین زر به د امیل د برخې (حصې) ثمن شمارلې کیږی.ځکه چې په مجلس کې د امیل ثمن اداکول واجب دی.د وینځې ثمن اداکول واجب نه دی.ددې ① مثال دادې.چه یوسړی د لمونځ یوه سجده پریخودله.اوده ته بل څه سهوه هم اوشوه. بیا ده د سهوې دوې (دوه) سجدې اداکړلې.او سلام ئې واړولو.نود سهوې په دوې (دوه) سجدوکې به یوه سجده د لمونځ سجدو اړخ ته ګرځولې شی.اګرچه ده ددې نیت نه وی کړی.چه دده لمونځ په صحیح طریقه ادا شی.اود لمونځ فریضه دده د ذمې نه ساقط شی.ځکه چې د لمونځ سجده رکن او فرض ده.ددې نه بغیر لمونځ نه صحیح کیږی.او سجده سهوه واجب ده.ددې نه بغیر په لمانځه کې اګرچه نقصان پاته کیږی.خو دده د ذمې نه فریضه د لمونځ ادا کیږی.

② دوهم مثال دادې.چه یوکس طواف زیارت پریښولو .او طواف صدر ئې اداکړلو. نودا طواف صدر به طواف زیارت اړخ ته ګرځولې شی.چه دده حج په صحیح طریقه اداشی.ځکه چې طواف زیارت دحج رکن دې.ددې نه بغیر حج نه صحیح کیږی.او طواف صدر واجب دې.ددې نه بغیر د حج فریضه اداکیږی.اود حاجی ذمه فارغیږی.دغه ډول زرمثقاله سپین زر به هم د امیل(هار) ثمن شمارلې کیږی.چه د امیل او وینځې دواړو بیع ټیك شی.

وَكَذَا لَوِ اشْتَرَاهَا بِأَلْفَيْ مِثْقَالٍ اوهم دغه ډول که ده وینځه او امیل دواړه د دوې (دوه) زره مثقالو په عوض (داسې) واخستل أَلْفٍ نَسِيئَةً چې یو زر پور دی وَأَلْفٍ نَقْدًا او یو زر نغد دی فَالنَّقْدُ ثَمَنُ الطَّوْقِ نو نغد به د امیل ثمن وی لِأَنَّ الْأَجَلَ بَاطِلٌ فِي الصَّرْفِ ځکه چې په بیع صرف کې میعاد باطل دې جَائِزٌ فِي بَيْعِ الْجَارِيَةِ اود وینځې په بیع کې جائز دې وَالْمُبَاشَرَةُ عَلَى وَجْهِ الْجَوَازِ وَهُوَ الظَّاهِرُ مِنْهُمَا اود عاقدینو د اړخه ښکاره هم داده.چه د عقد ارتکاب په جائز طریقه باندې وی.

**تشریح:-** دغه ډول که وینځه او امیل دواړه ئې د دوې (دوه) زره مثقاله سپینو زرو په عوض په دې طریقه واخستل.چه زرمثقاله پور دی.او زر نغد دی.نو زرنغد به د امیل ثمن شمارلې کیږی.ځکه چې په بیع صرف کې

ميعاد مقررول يعنى د پور معامله کول باطل دى.اود وينځې په بيع کې پور جائز دي.اود عاقدينو د حال نه هم دا ښکاره ده.چه بيع جائز شي.نود ښکاره حال رعايت به کولې شي.او زرمثقاله نغد به د اميل د برخې (حصې) ثمن ګرځولې شي.چه د اميل اود وينځې دواړو بيع ټيک شي.

**يوه توره په سپينو زرو ښائسته شوې په نصف نغد قيمت باندې د خرڅولو حکم**

وَكَذٰلِكَ إِنْ بَاعَ سَيْفًا مُحَلًّى بِمِائَةِ دِرْهَمٍ او هم دغه ډول که په سپينو زرو ښائسته شوې يوه توره د سل درهمو په عوض خرڅه کړله. وَحِلْيَتُهُ خَمْسُونَ او ددې حليه (زيور) پنځوس درهمه دي فَدَفَعَ مِنَ الثَّمَنِ خَمْسِيْنَ اوده په ثمن کې پنځوس درهمه اداکړل جَازَ الْبَيْعُ نو بيع جائز شوه وَكَانَ الْمَقْبُوضُ حِصَّةَ الْفِضَّةِ نو په کوم چې قبضه شوې ده.هغه د سپينو زرو (د زيور) برخه ده وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ ذٰلِكَ اګر که بيان کړې نې نه وى لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دي.

حل اللغة: ① سيف-توره-② خمسون-پنځوس-③ الولوء-ملغلرې-④ المرجان-دغمويو قسم

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چې يوسړى په سپينو زرو ښائسته شوې يوه توره د سل درهمو په عوض خرڅه کړله.په داسې حال کې چې ددې زيور پنځوس درهمه دى.بيا مشترى په ثمن کې پنځوس درهم اداکړل.اودا تصريح ئې اونکړله.چه دا پنځوس درهمه د زيوراتو عوض دي.ياد تورې عوض دي.ياد دواړو عوض دي.نودا بيع به جائز وى.او هغه پنځوس درهم په کوم چې بائع قبضه کړې ده.د زيوراتو ثمن به شمارلې شى.خکه چې د زيور په ثمن باندې قبضه کول واجب دى.په دې وجه د ښکاره حال تقاضا هم دا ده.چه اول به ئې هم دا اداکړې وى.

وَكَذٰلِكَ إِنْ قَالَ او هم دغه ډول که ده اووئيل خُذْ هٰذِهِ الْخَمْسِيْنَ مِنْ ثَمَنِهِمَا چې دا پنځوس درهمه ددې دواړو په ثمن کې واخله. لِأَنَّ الْاِثْنَيْنِ قَدْ يُرَادُ بِذِكْرِهِمَا الْوَاحِدُ خکه چې کله په دوې (دوه) ذکر کاوه سره يو مراد وى قَالَ اللّٰهُ تَعَالَىٰ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ لکه چې د الله تعالى ارشاد دي.چه ددې دواړو سمندرونونه موتيان (ملغلرې) او مرجان راوځي وَالْمُرَادُ أَحَدُهُمَا او مراد ددې دواړو نه يو دي فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ لِظَاهِرِ حَالِهِ نو ښکاره حال به په دې باندې محمول وى فَإِنْ لَمْ يَتَقَابَضَا اوکه يوځائې قبضه اونکړې شوه حَتّٰى افْتَرَقَ تردې چې دواړه جلا شو أَبْطَلَ الْعَقْدُ فِي الْحِلْيَةِ نو په زيورکې به عقد باطل وى لِأَنَّهُ صَرْفٌ فِيهَا خکه چې دا په حليه کې بيع صرف دې.

تشريح:- اوکه مشترى په صراحت سره دا اووئيل.چه دا پنځوس درهمه د تورې اود زيور دواړو ثمن دې.نوپه دې صورت کې به هم دا د زيور ثمن شمارلې کيږى.ګويا مشترى دا اووئيل.چه ددې دواړو په ثمن کې چې څومره قدرې قبضه کول واجب دى.هغه واخله.خکه چې دمسلمانانو کارونه حتى الامکان په جواز او صلاح باندې محمول کولې شى.او دلته کې په جواز باندې محمول ممکن هم دى.په دې طريقه چې په «من ثمنهما» کې د تثنيه ضمير نه واحد مراد واخستلې شى.اودا اووئيلى شى.چه مشترى اګرچه «من ثمنهما» وئيلى دى.خو مراد «من ثمن الحلية» دې.او تثنيه ذکرکول او واحد مراد اخستل جائز هم دى. لکه چې د الله تعالى قول «يخرج منهما اللؤلؤ والمرجان» کې د ،،منهما،، ضمير مرجع خوږ او تريو (مالګين) سمندر دې. خو موتيان (ملغلرې) او مرجان صرف د تريو (مالګين) او منشور سمندر نه راوځى.ددې نه معلومه شوه.چه په ،،منهما،،کې د تثنيه نه مراد واحد دې.داسې نور ډير مثالونه دى. نو هرکله چې تثنيه وئيل او واحد مراد اخستل عام او شائع دى.نود مشترى د مسلمان کيدلو د حالت رعايت به کولې شى.او دده قول «من ثمنهما» به په «من ثمن الحلية» باندې محمول کوى.اود بيع جواز په دې صورت کې کيدلې شى.چه دې د جائز کار ارتکاب کوى.د ناجائز کار ارتکاب نه وجه د «خذ هذه الخمسين من ثمنهما» وئيلو په صورت کې به هم دا پنځوس درهمه د زيور ثمن اوګرځولې شى.په دې زيور او تورې دواړو به نشى شمارلې. نواز



ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائى.چه په ذکرشوې دواړو صورتونوکې يعنى د وينځې اود اميل په صورت کې اود تورې او زيور په صورت کې که په مجلس کې لاس پلاس قبضه اونشوه.اوعاقدين دواړه جلا شو.نود اميل او زيور په برخه کې به عقد باطل وى.خکه چې د اميل او زيور په حصوکې د دواړو عوضونو ثمن يعنى د سپينو زرو کيدلو په وجه دا عقدصرف دې.اود قبضه کاوه نه بغير جداکيدلو سره چونکه عقدصرف باطليږى.په دې وجه به په برخه د اميل اوپه برخه د زيورکې دا عقد باطل وى.او په وينځه کې به ټيک وى.

وَكَذَا فِي السَّيْفِ او دغه ډول په توره کې هم إِنْ كَانَ لَا يَتَخَلَّصُ إِلَّا بِضَرَرٍ که زيور د ضرر نه بغير جلا نشى لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ تَسْلِيْمُهُ بِدُوْنِ الضَّرَرِ خکه چې د ضرر نه بغير د تورې سپارل ممکن نه دى وَلِهٰذَا لَا يَجُوْزُ إِفْرَادُهُ بِالْبَيْعِ اوهم په دې وجه صرف (خانله) د تورې بيع جائز نه ده كَالْجِذْعِ فِي السَّقْفِ لکه په چت کې د شهتير (بيع جائز نه ده) وَإِنْ كَانَ يَتَخَلَّصُ بِغَيْرِ ضَرَرٍ اوکه زيور د تورې نه د ضرر نه بغير جلا شى جَازَ الْبَيْعُ فِي السَّيْفِ نو په توره کې به بيع جائز وى وَبَطَلَ فِي الْحِلْيَةِ اود زيور بيع به باطل وى لِأَنَّهُ أَمْكَنَ إِفْرَادُهُ بِالْبَيْعِ خکه چې خانله (صرف) د تورې بيع ممکن ده فَصَارَ كَالطَّوْقِ وَالْجَارِيَةِ نود وينځې او اميل پشان شو.

حل اللغة: ① السيف-توره-② يتخلص-جدا کيږى-③ دون-بغير-④ الحلية-ګالى

تشريح:- پاتې شوه د تورې معامله،نو زيور که د تورې سره په داسې طريقه باندې مولښتى او لګيدلې وى.چه زيور د تورې نه جداکول د ضررنه بغير ممکن نه وى.نود تورې بيع به هم باطل وى.خکه چې په دې صورت کې د ضرر نه بغير د تورې سپارل ممکن پاتې نشو.او په کوم صورت کې چې د ضررنه بغير مبيع سپارل ممکن نه وى.په هغه صورت کې بيع باطليږى.خکه به په ذکرشوى صورت کې دتورې بيع هم باطل وى.هم دا وجه ده.چه هرکله د زيور تورې نه جلا کول د ضررنه بغير ممکن نه وى.نود خانله تورې بيع به جائز نه وى.لکه مثلاً په چهت کې د لګيدلى تير(ګادر) سپارل چونکه د ضررنه بغير ممکن نه دى.په دې وجه په چهت کې د لګيدلى تير خرڅول ناجائز دى.اوکه د زيور تورې نه جلا کول د ضررنه بغير ممکن وى.نود تورې بيع به جائز وى.اود زيور بيع به باطل وى.خکه چې په دې صورت کې توره يعنى مبيع د ضررنه بغير سپارل ممکن دى.او په کوم صورت کې چې مبيع د ضرر نه بغير سپارل ممکن وى.په هغه صورت کې بيع جائز وى.خکه به په دې صورت کې د تورې بيع جائز او درست وى.هم دا وجه ده.چه په دې صورت کې د خانله تورې خرڅول جائز دى.اودا د وينځې او اميل د يوځائې خرڅولو پشان شو.يعنى که وينځه او اميل يوځائې د دوې (دوه) زره مثقاله په عوض خرڅ کړى.اود قبضه کاوه نه بغير عاقدين جلا شو.نود اميل بيع به د عقدصرف کيدلو په وجه باطل وى.خود وينځې بيع به ټيک وى.خکه چې د وينځې سپارل ممکن دى.

وَهٰذَا اودا حکم هغه وخت دې إِذَا كَانَتِ الْفِضَّةُ الْمُفْرَدَةُ کله چې دا سپين زر کوم چې جدا دى أَزْيَدَ مِمَّا فِيهِ دا زيات وى دهغې نه کوم چې په مبيع کې دى فَإِنْ كَانَتْ مِثْلَهُ أَوْ أَقَلَّ مِنْهُ أَوْ لَا يَدْرِيْ نوکه ددې نه کم يا ددې په مثل وى.يا ددې مقدار معلوم نه وى لَا يَجُوْزُ الْبَيْعُ لِلرِّبَا أَوْ لِاحْتِمَالِهِ نود رباء يا احتمال د رباء په وجه به بيع جائز نه وى وَجِهَةُ الصِّحَّةِ مِنْ وَجْهٍ اود صحيح کيدلو جهت په يو وجه دې.

حل اللغة: ① المفردة-جدا-② اقل-کم-③ لايدري-معلومه نه وى-④ رجحت-راجح شوه

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه دا واړه تفصيلات په هغه صورت کې دى.چه کوم سپين زر جلا وى.او ثمن جوړشوى دى.د هغه سپينو زرو نه زيات وى.کوم چې په مبيع يعنى توره کې لګيدلى دى.لکه څنګه چې په ذکرشوې مسئله کې لګيدلى سپين زر پنځوس درهمه دى.او ثمن سل درهمه دى.نودا صورت جائز دې.خکه چې کوم سپين زر دمبيع سره مولښتى لګيدلى دى.دا سپين زر به د خپلې اندازې سپينو زرو په مقابله کې شى.اوکوم سپين زر چې زيات دى.دا به د مبيع په عوض کې شى.اوکوم سپين زر چې ثمن دې.دهغه سپينو زرو برابر وى.کوم چې مبيع سره مولښتى لګيدلې دى.يا ددې نه کم وى.يا ددې مقدار معلوم نه وى.نو بيع به جائز نه وى.خکه چې په کوم صورت کې د ثمن سپين زر،مبيع سره لګيدلى سپين زر برابر دى.يا کم دى.نو رباء لازميږى.د برابروالى په

صورت کښې ځکه چې سپين زر د سپينو زرو په عوض شو.او مبيع يعنې توره د عوض نه بغير پاتې شوه.اود کم په صورت کې توره او څه ثمن بلاعوض پاتې کيږي.مثلاً د ثمن سپين زر لس تولې دی.او په توره باندې لګيدلی سپين زر دولس تولې دی.نو لس تولې د لسو تولو په عوض کې شو.او توره او دوې (دوه) تولې سپين زر بې عوضه پاتې شو.او په عقدبيع کې د يوڅيز بلاعوضه پاتې کيدل هم دا رباء ده.په دې وجه په دې دوارو صورتونو کې رباء لازميږي.اوکه د ثمن د سپينو زرو مقدار معلوم نه وی.نو په دې صورت کې د رباء احتمال دې.ځکه چې داهم کيداې شی.چه د ثمن سپين زر د هغه سپينو زرو نه زيات وی.کوم چې مبيع سره مولښتی لګيدلی دی.اودا هم کيداې شی.چه ددې برابر وی.اودا هم کيداې شی.چه ددې نه کم وی.بهرحال په دې صورت کې احتمال د رباء دی.او احتمال رباء،چونکه د حقيقت رباء پشان حرام دې.ځکه به دا صورت هم ناجائز وی.

> وَجِهَةُ الْفَسَادِمِنْ وَجْهَيْنِ اود فساد جهت په دوې (دوه) وجو سره دې فَتَرَجَّحَتْ نود فساد جهت به راجح وی.

**تشريح:**- دا عبارت د يوسوال ځواب دې. سوال دادې.که د ثمن د سپينو زرو مقدار معلوم وی.نو بيع جائز کيدل پکار دی.ځکه چې د اصل بيع جائزکيدل دی.او مفسد هغه زياتوالې دې.کوم چې د عوض نه خالی وی.نو ترکومه پورې چې د زياتوالی علم يقينی طورباندې نه وی.تر هغه وخته پورې به د جواز حکم لګولې شی؟

ځواب*ددې ځواب دادې.چه د ثمن د سپينو زرومقدار نه معلوميدلو په وجه درې احتماله دی.① يا خوبه د ثمن د سپينو زرو مقدار د هغه سپينو زرو نه زيات وی.کوم چې مبيع يعنی تورې سره لګيدلې دې.② يا به ددې برابر وی.③ اويا به ددې نه کم وی.په ړومبی صورت کې يعنی د زياتوالی په صورت کې خو بيع جائز ده.او په پاتی دوې (دوه) صورتونو کې يعنی د برابروالی او کموالی په صورت کې بيع فاسد ده.نود ثمن د سپينوزرومقدار نه معلوميدلو په صورت کې په يو اعتبار سره بيع جائزده.او په دوې (دوه) اعتبارو بيع فاسد ده.او دا خبره د روښانه ورځې پشان ښکاره ده.چه دوې (دوه) ته په يو باندې ترجيح حاصل وی.نود فساد اړخ به راجح وی.او هرکله چې د فساد اړخ راجح دې.نو په دې صورت کې به هم بيع فاسد وی.

### د سپينو زرو لوخي خرڅولو نه روسته د څه ثمن پاته پاتې کيدلو کښې د بيع حکم

> قَالَ فرمائي وَمَنْ بَاعَ إِنَاءَ فِضَّةٍ اوکه يو کس د سپينو زرو يو لوخي خرڅ کړو ثُمَّ افْتَرَقَا بيا دواړه جلا شو وَقَدْ قَبَضَ بَعْضَ ثَمَنِهِ حالانکه بائع په بعض ثمن باندې قبضه کړې ده بَطَلَ الْبَيْعُ فِيمَا لَمْ يُقْبَضْ نو په هغه برخه کې په کوم چې بائع قبضه نه ده کړې.بيع به باطل وی وَصَحَّ فِيمَا قُبِضَ او په کوم نې چې قبضه کړې ده.په هغې کې به بيع صحيح وی وَكَانَ الْإِنَاءُ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا او لوخي به د بائع او مشتری په منځ کې مشترك وی لِأَنَّهُ صَرْفٌ كُلُّهُ ځکه چې دا پوره عقدصرف دی فَصَحَّ فِيمَا وُجِدَ شَرْطُهُ نو په کوم اندازه کې چې د صرف شرط اوموندې شو.په هغې کې به بيع صحيح وی وَبَطَلَ فِيمَا لَمْ يُوجَدْ اوپه کوم کې چې شرط نه دې موندلې شوې.په هغې کې به عقد صحيح باطل وی.

**حل اللغة:** ① الاناء-لوښې-② طارئ-پيدا شوې-③ الافتراق-جدا کيدل-④ الخيار-اختيار

**تشريح:**- مسئله داده.چه يوکس د سپينو زرو يو لوخي خرڅ کړو.بيا عاقدين جلا شو.حالانکه د جداکيدلو نه وړاندې مشتری د ثمن يوه برخه ادا کړې ده.نو څومره قدرې ثمن نې چې ادا کړې دې.هم ددې په اندازه به بيع صحيح وی او څومره قدرې نې چې نه دې ادا کړې.ددې په اندازه به باطل وی.اودا لوخي به د بائع اومشتری په مينځ کې مشترك وی.مثلاً د سل درهمو وزن لوخي نې د سل درهمو په عوض واخستلو.بيا مشتری صرف پنځوس درهمه اداکړل.او پنځوس نې ادا نکړل.ددې نه روسته دواړه جلا شو.نود پنځوس درهمو په اندازه د لوخی بيع صحيح ده.اود پنځوسو په اندازه باطل ده.اوچونکه مشتری نصف ثمن يعنی پنځوس درهمه اداکړی دی.په دې وجه به د لوخی د نصف مالك مشتری اود نصف مالك به بائع وی.



لا دليل دادې.چه داعقد پوره په پوره عقدصرف دې.اود عقدصرف د بقائې جواز شرط تقابض دې.يعنی د جلا کيدلو نه وړاندې دواړو عوضونو باندې قبضه کول شرط دی.نوپه څومره برخه کې چې دا شرط موندلې شوې دې.په دومره کې به دا عقد صحيح وی.او په څومره کې چې دا شرط نه دې موندې شوې.په دومره کې به دا عقد باطل وی.

> وَالْفَسَادُ طَارِئٌ او فساد چونکه پيدا شوې دې لِأَنَّهُ يَصِحُّ ثُمَّ يَبْطُلُ بِالْاِفْتِرَاقِ ځکه چې عقد صحيح وو.د افتراق په وجه بيا باطل شوې دې فَلَا يَشِيعُ ځکه به فساد نه خوريږی.

**تشريح:**- دا عبارت د يوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه هرکله د قبضې نه موجودکيدلو په وجه د نصف لوخي بيع فاسد شوه.نودا فساد د پوره لوخی په بيع کې خوريدل پکار دی.اود پوره لوخی بيع فاسديدل پکار دی.نه د نصف لوخی؟

ځواب*ددې ځواب دادې.چه دفساد دوې (دوه) قسمونه دی.① فساد اصلی ② فساد طاری ، او ددې په اړه کې قاعده داده.که د عقد په ابتداء کې فساد وی.نودې ته فساد اصلی ونيلې شی.اوکه عقد صحيح منعقد شی.او روسته فساد پيدا شی.نودې ته فساد طاری ونيلې شی.او ددې حکم دادې.چه د فساد اصلی په صورت کې پوره عقد فاسديږی.اود فساد طاری په صورت کې پوره عقد نه فاسديږی.بلکه د مفسد په اندازه فاسديږی.او دلته کې په هرنصف ثمن باندې د قبضه کاوه په وجه چې کوم فساد پيدا شوې دې.دا فساد طاری دې.ځکه چې په عقدصرف کې د جلا کيدلو نه وړاندې د تقابض شرط، د جواز عقد د بقاء شرط دې.د انعقاد عقد شرط نه دې.يعنی عقدصرف صحيح منعقد شوې وو.خوکله چې د قبضه نه بغير افتراق اوشو.نو ددې په وجه فساد پيدا شو.نو هرکله چې دا فساد طاری دې.نو په پوره عقد کې به نه خوريږی.بلکه د مفسد په اندازه يعنی صرف د لوخی په بيع کې به وی.ددې مثال داسې دې.لکه مثلاً يوکس دوې (دوه) غلامان خرڅ کړل. بيا د مشتری د قبضه نه وړاندې په دې کې يومړ شو.نو بيع به په ژوندې غلام کې پاتې وی.او په مړ شوی کې به باطل وی.اوکه څوك اعتراض اوکړی.چه د نصف لوخی بيع صحيح کيدلو اود نصف بيع باطليدو کې په مشتری باندې تفريق د صفقه لازميږی. اود تفريق صفقه په صورت کې مشتری ته اختيار وی.نو دلته کې هم مشتری ته اختيارکيدل پکار وو.حالانکه تاسو مشتری ته اختيار نه دې ورکړې.ددې ځواب دادې.چه تفريق صفقه د مشتری په فعل سره لازم شوې دې.ځکه که مشتری د جداکيدلو نه وړاندې پوره ثمن ادا کړې وو.نودا تفريق صفقه به نه لازميدلو.نو هرکله چې په دې تفريق کې مشتری مجرم دې.نو دده حق اختيار به هم ساقطيږی.

> قَالَ وَلَوِ اسْتُحِقَّ بَعْضُ الْإِنَاءِ او دا که د لوخي يوه برخه مستحق شوه فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ نو مشتری ته اختيار دې إِنْ شَاءَ أَخَذَ الْبَاقِيَ بِحِصَّتِهِ که غواړی.پاتې دې ددې د برخې (حصې) د ثمن په عوض واخلی وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ او که غواړی.واپس دې کړی لِأَنَّ الشَّرِكَةَ عَيْبٌ فِي الْإِنَاءِ ځکه چې په لوخي کې شرکت پيدا کيدل عيب دې.

**تشريح:**- صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه په ذکرشوې مسئله کې که د لوخی يوه برخه مستحق شوه.يعنی د بائع او مشتری نه علاوه يو دريم کس په نيم لوخی کې د خپل استحقاق دعوه اوکړی.اودا ثابته کړی.نو مشتری ته به اختيار وی.چه دې غيرمستحق لوخې ددې برخې (حصې) د ثمن په عوض واخلی.يا نې ردکړی.ځکه چې په لوخی کې شرکت پيداکيدل عيب دې.او عيب هم داسې چې په دې کې د مشتری فعل ته هيڅ دخل نشته.اود عيب په صورت کې چونکه مشتری ته اختيار وی.ځکه به په دې صورت کې هم مشتری ته اختيار وی.

### د سپينو زرو يوه ټکړه خرڅولو نه روسته د بعض مستحق کيدلو مسئله

> وَمَنْ بَاعَ قِطْعَةَ نُقْرَةٍ اوکه يو کس د سپينو زرو يوه ټکړه خرڅه کړله ثُمَّ اسْتُحِقَّ بَعْضُهَا بيا ددې يوه برخه مستحق شوه أَخَذَ مَا بَقِيَ بِحِصَّتِهِ نو مابقی به ددې د برخې (حصې) د ثمن په عوض اخلی وَلَا خِيَارَ لَهُ او ده ته به اختيار هم نه وی لِأَنَّهُ لَا يَضُرُّهُ التَّبْعِيضُ ځکه چې ددې ټکړې کول هيڅ مضر نه دی.

**حل اللغة:** قطعة-ټکړه-نقرة-سپین زر-الحنطة-غنم-الشعیر-اوربشي

**تشریح:-** مسئله:که یوکس د سپینو زرو ټکړه خرڅه کړله.بیا دعاقدین نه علاوه دریم کس ددې په یوه برخه کې استحقاق ثابت کړو.نو په څومره اندازه ټکړه چې غیرمستحق پاتې شوه. مشتري به دا ددې د برخې (حصې) د ثمن په عوض اخلي.او مشتري ته به د اخستلو اود نه اخستلو اختیار هم نه وي.ځکه چې ددې ټکړې ټکړې کول مضر نه دی.او هرکله چې ټکړې کول مضر نه دی.نو په دې کې به شرکت عیب نه شمارلې کیږي.او هرکله چې شرکت عیب نه دې.نو مشتري ته به اختیار هم حاصل نه وي.

**د دوې (دوه) درهمو او یو دینار،د یو درهم او دوې (دوه) دینارو سره د بیع حکم**

قَالَ وَمَنْ بَاعَ دِرْهَمَيْنِ وَدِينَارًا بِدِرْهَمٍ وَدِينَارَيْنِ اوکه یوکس دوې (دوه) درهمه او یو دینار،د یو درهم او دوې (دوه) دینارو په عوض خرڅ کړل جَازَ الْبَيْعُ نودا بیع جائز ده وَيُجْعَلُ كُلُّ جِنْسٍ بِخِلَافِهِ او په دې کې به هریو جنس ددې د خلاف په عوض ګرځولې شي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللهُ لَا يَجُوزُ او امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرماني.چه جائز نه ده وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ اوهم په دې اختلاف باندې دادی إِذَا بَاعَ كُرَّ شَعِيرٍ وَكُرَّ حِنْطَةٍ بِكُرَّيْ شَعِيرٍ وَكُرَّيْ حِنْطَةٍ چې کله یو کُر اوربشې او یوکُر غنم،د دوې (دوه) کُر غنمو اود دوې (دوه) کُر اوربشو په عوض خرڅ کړي وَلَهُمَا د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله دلیل دادې أَنَّ فِي الصَّرْفِ إِلَى خِلَافِ الْجِنْسِ تَغْيِيرَ تَصَرُّفِهِ چې خلاف جنس اړخ ته ګرځولو کې دده تصرف متغیر کول لازمیږي لِأَنَّهُ قَابَلَ الْجُمْلَةَ بِالْجُمْلَةِ ځکه چې ده د مجموعې مقابله مجموعې سره کړې ده وَمِنْ قَضِيَّتِهِ الْإِنْقِسَامُ عَلَى الشُّيُوعِ او ددې تقاضا مشترکه طور باندې بتهواره ( تقسیمول) ده لَا عَلَى التَّعْيِينِ په متعین طور باندې نه دی وَالتَّغْيِيرُ لَا يَجُوزُ او تصرف متغیرکول جائز نه دی وَإِنْ كَانَ فِيهِ تَصْحِيحُ التَّصَرُّفِ اګرچه په دې کې تصرف صحیح کول دی.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوکس دوې (دوه) درهمه او یو دینار،د یو درهم او دوې (دوه) دینارو په عوض خرڅ کړلو.نو زمونږ په نیز دا بیع جائز ده.او په دواړو کې به هریو جنس ددې د خلاف عوض ګرځولې شي.ځکه که خلاف جنس اړخ ته اونه ګرځولې شي.بلکه هر یو ددې د جنس مقابل اوګنړلې شي.یعنی دوې (دوه) درهم به د دوې (دوه) دینارو په مقابله کې شمارلې کیږي.او یو درهم به د یو دینار په عوض کې شمارلې شي.یعنی درهمه د یو درهم په مقابله کې ، او یو دینار د دوې (دوه) دینارو په مقابله کې نو ربا، به لازم شي.او ربا، حرام او ناجائز ده.په دې وجه به دا عقد هم ناجائز وي.نود عاقدینو عقد صحیح کاوه لپاره هریو جنس ددې خلاف جنس اړخ ته ګرځولې شي.او امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمائیلي دي.چه دا عقدجائز نه دې.هم دا اختلاف هغه وخت دې.چه کله یوکُر اوربشې او یوکُر غنم،د دوې (دوه) کُره غنمو او د یوکُر اوربشو په عوض خرڅ کړې شي.نو زمونږ په نیز جائز دی.او یوکُر اوربشې د دوې (دوه) کُره غنمو،او یو کُر غنم د دوې (دوه) کُره اوربشو عوض ګرځولې شي. خود امام زفر او امام شافعي رحمهما الله په نیز ناجائز دي.

د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله دلیل دادې.چه په عوضینوکې هریو ددې د جنس په مقابل ګرځولو کې ، یعنی دوې (دوه) درهمه د یو درهم مقابل،او یو دینار د دوې (دوه) دینارو مقابل ګرځولوکې ربا، لازمیږي.او ربا، ناجائز ده.او خلاف جنس اړخ ته ګرځولوکې یعنی دوې (دوه) درهمه د یو دینار عوض،او یو دینار د دوې (دوه) درهمو عوض ګرځولوکې د عاقدینو تصرف متغیرکول لازمیږي.ځکه چې عاقدینو د دوې (دوه) درهمو او یو دینار مجموعه،د یو درهم او دوې (دوه) دینار مجموعې سره مقابله کړې ده.اود تقابل تقاضا داده.چه بتهواره ( تقسیم مشترکه اود شیوع په طریقه وي.په متعین طور باندې بتهواره نه وي.د شیوع مطلب دادې. چې په بدلینو کې د هر بدل هر یو جزء، د دوهم بدل هریو جزء سره مقابل وي.نود دوې (دوه) درهمو او یو دینار دینارو هرهر جزء سره مقابل وي.دغه ډول د یو درهم د هرهر جزء مقابل به هم وي.اود یو دینار هرهر جزء چې لکه څنګه د یو درهم هرهرجزء په مقابله کې وي.دغه ډول د دوې (دوه) درهمو هرهر جزء چې لکه څنګه د دوې (دوه) دینارو د هرهر جزء مقابل به هم وي.



ددې دلیل دادې.چه هرکله د مجموعې مقابله مجموعې سره اوکړې شي.نو ددې بتهواره د شیوع په طریقه کیږي.ددې مثال دادې.که یو کس یو غلام او یوه وینځه د کپړو او اس په عوض واخلي.بیا په غلام باندې یو دریم کس د استحقاق دعوه اوکړله.او واثې خستلو.نو مشتري به د غلام قیمت په کپړو او اس دواړو کې رجوع کوي.نوکه بتهواره د شیوع په طریقه نه وي.نو په کپړو او اس دواړوکې به د رجوع کاوه اختیار نه وي.نو هرکله چې د تقابل تقاضا د شیوع په طریقه باندې بتهواره کول دی.او په متعین طریقه بتهواره کول نه دی.نو دوې (دوه) درهمه د دوه دینارو په مقابله کې متعین کول،او یو دینار د یو درهم په مقابله کې متعین کول د عاقدینو تصرف متغیر کول دی.اود عاقدینو تصرف متغیر کول جائز نه دی.نو دوې (دوه) درهمه او یو دینار خلاف جنس اړخ ته ګرځول،یعنی دوې (دوه) درهمه د دوې (دوه) دینارو په طرف،او یو د ینار د یو درهم په اړخ ګرځول به هم جائز نه وي.امام زفر او امام شافعي رحمهما الله د عاقدینو تصرف صحیح جوړولو لپاره ددوی تصرف متغیر کاوه په عدم جواز باندې د مثال په طور یوځو مسئلې پیش کړې دي.

كَمَا إِذَا اشْتَرَى قُلْبًا بِعَشَرَةٍ وَثَوْبًا بِعَشَرَةٍ لکه مثلاً یوکس یو کړه د لس درهمو په عوض او یوه کپړه د لس درهمو په عوض واخستله ثُمَّ بَاعَهُمَا مُرَابَحَةً بیا ئې دا دواړه په مرابحه سره خرڅ کړل لَا يَجُوزُ نو جائز نه دی وَإِنْ أَمْكَنَ صَرْفُ الرِّبْحِ إِلَى الثَّوْبِ اګرچه نفع کپړې اړخ ته ګرځول ممکن دی.

**حل اللغة:** عشرة-لس-المرابحة-ګټه-الثوب-جامه-امکن-ممکن ده

**تشریح:-** رومبۍ مسئله داده.چه یوکس یوه کړه چې ددې وزن لس درهمه سپین زر دی.د لس درهمو په عوض واخستله.او یوه کپړه ئې د لس درهمو په عوض واخستله.بیائې دا دواړه د صفقه واحده لاندې د بیع مرابحه په طریقه باندې د پنځویشت درهمو په عوض خرڅول اوغوښتل.نودا جائز نه دی.ځکه چې پنځه درهمه نفع د کپړو او کړې دواړو مقابل ده.نو ګویا دولس نیم درهمه باندې ئې کړه خرڅه کړله.اود دولس نیم درهمه ئې کپړه خرڅه کړله.حالانکه د کړې وزن واړه لس درهمه دې.نود کړې اود دولس نیم درهمو په مبادله کې تفاضل اوموندې شو.او تفاضل ناجائز دې.ځکه به دا بیع مرابحه ناجائز وي.اګرچه پوره نفع کپړې اړخ ته ګرځول او ددې صحیح کیدل ممکن دی.خو چونکه پوره نفع کپړې اړخ ته ګرځولوکې د عاقدینو تصرف متغیر کول لازمیږي.او تصرف متغیر کول جائز نه دی.په دې وجه پوره نفع کپړې اړخ ته ګرځول ناجائز دی.

وَكَذَا إِذَا اشْتَرَى عَبْدًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ اوهم دغه ډول که یو غلام ئې د یو زر درهمو په عوض واخستلو ثُمَّ بَاعَهُ قَبْلَ نَقْدِ الثَّمَنِ مِنَ الْبَائِعِ مَعَ عَبْدٍ آخَرَ بِأَلْفٍ وَخَمْسِمِائَةٍ بیا ئې دا د ثمن ادا کاوه نه وړاندې د بائع په لاس د دوهم غلام سره د پنځلس سوه درهمو په عوض خرڅ کړو لَا يَجُوزُ فِي الْمُشْتَرَى بِالْأَلْفِ نود یو زر په عوض اخستې شوی غلام کې به بیع جائز نه وي وَإِنْ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ بِصَرْفِ الْأَلْفِ إِلَيْهِ اګرچه یو زر ددې اړخ ته ګرځولو سره عقد صحیح جوړول ممکن دی.

**تشریح:-** دویمه مسئله داده، چې یوکس یو غلام د زر درهمو په عوض واخستلو.بیا مشتري د ثمن اداکولو نه وړاندې د بائع په لاس دا غلام او ددې سره دوهم غلام د پنځلس سوه درهمو په عوض خرڅ کړلو.نود زر درهمو په عوض اخستې شوی غلام کې به دا بیع ناجائز وي.ځکه چې کله دوې (دوه) غلامان په پنځلس سوه درهمو په عوض خرڅ کړي.نود هر یو غلام برخه د زرو نه کمه یعنی اونیم سوه درهم کې پریوتله.نوکوم غلام ئې چې په زر درهمه باندې اخستې وو.د ثمن ادا کاوه نه وړاندې ددې زر درهمو نه په کم باندې خرڅول لازم شو.او وړاندې تیرشوی دي.چه «شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن» جائز نه ده.ځکه به د زردرهمو په عوض اخستې شوی غلام کې دا بیع ناجائز وي.اګرچه دا عقد صحیح کول ممکن دی.په دې طریقه چې پنځلس سوه درهموکې زر درهم ددې قیمت اوګرځولې شي.کوم ئې چې د زردرهمو په عوض اخستې وو.او پاته پنځه سوه درهم د دوهم غلام قیمت اوګرځولې شي.نو په دې صورت کې «شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن» نه لازمیږي.خو داسې ځکه نشي کیدلې.چه په داسې کولوکې تصرف متغیر کول لازمیږي.په دې طریقه چې ده دواړو غلامانو مجموعه د پنځلس سوه درهمو

عـوض ګرځولی وو.متعین طورباندې نـې یـوغلام د زردرهمـو عـوض،او یـو د پنځـه سوه درهمـو عـوض نـه ووګرځولې.اود تصرف متغیر کول جائز نه دی.په دې وجه متعین طور باندې د اخستې شوی غلام قیمت زر درهمه اود دوهم قیمت پنځه سوه درهمه نشي ګرځولې.

وَكَذَا إِذَا جَمَعَ بَيْنَ عَبْدِهِ وَعَبْدِ غَيْرِهِ اوهم دغه ډول که خپل غلام اود بل غلام نې یوځائې کړو وَقَالَ بِعْتُكَ أَحَدَهُمَا او وې وئیل.چه ما ستا په لاس په دې دواړوکې یو خرڅ کړو لَا يَجُوزُ نو جائز نه دی وَإِنْ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ بِصَرْفِهِ إِلَى عَبْدِهِ اګرچه دا بیع دده غلام اړخ ته په ګرځولو سره صحیح جوړول ممکن دی.

تشریح:- دریمه مسئله داده.که خپل غلام اود بل کس غلام ملاؤکړی.او اووائی.چه ما ستا پلاس دې دواړو کښې یوغلام خرڅ کړلو.نودا بیع جائز نه ده.حالانکه ددې صحیح جوړول په دې طریقه ممکن دی.چه ذکرشوې بیع دده غلام اړخ ته اوګرځولې شی.ځکه چې دده د تصرف تقاضا داده.چه په دې دواړو غلامانوکې یوغیرمعین غلام مبیع دی.او خاص طور باندې دده غلام اړخ ته ګرځولوکې تغیر لازمیږی.او تغیرناجائز دی.

وَكَذَا إِذَا بَاعَ دِرْهَمًا وَثَوْبًا بِدِرْهَمٍ وَثَوْبٍ اوهم دغه ډول که یو درهم او یوه کپړه نې د یو درهم او یوې کپړې په عوض خرڅه کړه وَافْتَرَقَا مِنْ غَيْرِ قَبْضٍ اود قبضې نه بغیر دواړه عاقدان جلا شو فَسَدَ الْعَقْدُ فِي الدِّرْهَمَيْنِ نو په دواړه درهموکې به عقد فاسد وی وَلَا يُصْرَفُ الدِّرْهَمُ إِلَى الثَّوْبِ او درهم به کپړې اړخ ته نشی ګرځولې لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې.

تشریح:- څلورمه مسئله داده.چه یوکس یودرهم او یوه کپړه د یو درهم اویوې کپړې په عوض خرڅه کړله.بیا د قبضه کاوه نه بغیر دواړه عاقدین جلا شو.نود دواړو درهمو عقد فاسدیږی.اود عقدصحیح کاوه لپاره دانشی کیدلې.چه درهم کپړې اړخ ته اوګرځولې شی.ځکه چې په داسې کولوکې د تصرف تغیر لازمیږی.په دې طریقه چې ده د درهم اوکپړې مجموعې مقابله د درهم اوکپړې مجموعې سره کړې ده.متعین طور باندې د درهم مقابله کپړې سره نه ده کړې.اود تصرف تغیر ناجائز دی.په دې وجه ددې عقدصحیح جوړولو لپاره به تصرف نشی متغیر کولې. حاصل دا چې دوې (دوه) درهمه او یو دینار،د دوې (دوه) دینار او یودرهم په عوض خرڅولو په صورت کې که یوجنس ددې جنس اړخ ته اوګرځولې شی.یعنی دوې (دوه) درهمه د یودرهم په عوض،او یو دینار د دوې (دوه) دینارو په عوض کې اوګرځولې شی.نو په دې صورت کې دتصرف تغیر کول هم لازمیږی.او رباء هم لازمیږی.اودا دواړه ناجائز دی.اوکه خلاف جنس اړخ ته اوګرځولې شی.نود تصرف متغیر کول لازمیږی.اودا هم ناجائز دی.اوکه د مجموعې مقابله مجموعې سره اوکړې شی.نوچونکه په دې صورت کې بتواره د شیوع په طور کیږی.په دې بدلینوکې به د هربدل هرهر جزء د دوهم بدل د هرهر جزء په مقابله کې وی.او هرکله چې دا خبره ده.نود دوې (دوه) درهمو هرهر جزء چې څنګه د دوې (دوه) دینارو هرهر جزء په مقابله کې دې.دغه ډول د یو درهم د هرهر جزء په مقابله کې به هم وی.او هرکله چې د دوې (دوه) درهمو هرهر جزء د یو درهم د هرجزء په مقابله کې دې.نو رباء به لازمیږی.ځکه چې د دوې (دوه) درهمو اجزاء زیات دی.اود یو درهم اجزاء کم دی.هم دغه شان چې کله د یو دینار هرهر جزء د یو درهم د هرهر جزء په مقابله کې دې.نود دوې (دوه) دینارو د هرهر جزء په مقابله کې به هم وی.او هرکله چې د یو دینار د هرهر جزء مقابل دې.نو رباء به لازمیږی.ځکه چې د دوې (دوه) دینارو اجزاء زیات اود یو دینار اجزاء کم دی.اود قدر اوجنس اتحاد سره په بدلینوکې کموالې زیاتوالې کیدل رباء ده.او رباء حرام او ناجائز ده.نودا صورت به هم ناجائز وی.نو هرکله چې درې احتماله دی.او درې واړه ناجائز دی.نو معلومه شوه.چه دوې (دوه) درهمه او یو دینار د یو درهم او دوې (دوه) دینارو په عوض خرڅول ناجائز دی.

### د احنافو دلیل

وَلَنَا زموږ دلیل دادې أَنَّ الْمُقَابَلَةَ الْمُطْلَقَةَ تَحْتَمِلُ مُقَابَلَةَ الْفَرْدِ بِالْفَرْدِ چې مطلقاً مقابله د،،فرد بالفرد،، د مقابلې احتمال لری كَمَا فِي مُقَابَلَةِ الْجِنْسِ بِالْجِنْسِ لکه څنګه چې د جنس مقابله په جنس کې دی وَأَنَّهُ طَرِيقٌ مُتَعَيَّنٌ لِتَصْحِيحِهِ اودا



مقابله بالفرد دعقد صحیح کاوه لپاره متعین طریقه ده فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ تَصْحِيحًا لِتَصَرُّفِهِ نو ددې تصرف صحیح کاوه لپاره په ددې پشان مقابله باندې محمول کولې شی.

تشریح:- په ذکرشوې مسئله کې زموږ دلیل دادې.چه د دوې (دوه) درهمو اود یو دینار مقابله،د یو درهم او دوې (دوه) دینارو سره مطلق ده.په دې کې هم احتمال دې.چه د مجموعې مقابله د مجموعې سره وی.اودا هم احتمال دې.چه د فرد مقابله د فرد سره وی.په مقابله د،،فرد بالفرد،، کې هم دوې (دوه) احتماله دی.یودا چې مقابله د ،،فرد بالفرد،،من جنسه وی.یعنی دوې (دوه) درهم د یو درهم په مقابله کې وی.او یو دینار د دوې (دوه) دینارو په مقابله کې وی. دوهم داچه مقابله د،،فرد بالفرد،،من غیرجنسه وی.یعنی دوې (دوه) درهمه د دوې (دوه) دینارو په مقابله کې وی.او یو دینار د یو درهم په مقابله کې وی.حاصل داچه څنګه مقابله مطلقه د،،مقابلهٔ کل بالکل،، احتمال لری.دغه ډول د،،مقابله فرد بالفرد،، احتمال هم لری.لکه څنګه چې د مقابله جنس بالجنس کې د مقابله فرد بالفرد احتمال دې.په دې طریقه چې دوې (دوه) دیناره د دوې (دوه) دینارو په عوض خرڅ کړې شو.نو بالاتفاق یو دینار د یو دینار په مقابله کې کیدلې شی.دغه ډول دلته کې په مقابله مطلقه کې هم د مقابله فرد بالفرد احتمال موجود دې.نو په احتمالاتِ ثلاثه کې دوې (دوه) احتماله یعنی مقابله کل بالکل او مقابله فرد بالفرد من جنسه په صورت کې د عاقدینو تصرف باطلیږی.او په مقابله فرد بالفرد من غیرجنسه په صورت کې تصرف ټیک پاتې کیږی.نو ګویا په مقابله د فرد بالفردمن غیرجنسه کې دده د تصرف صحیح جوړولو یوه متعین طریقه ده.اودا خبره چونکه مسلم ده.چه د عاقل بالغ سړی تصرف د صحیح کاوه حتی الامکان کوښښ پکار دې.په دې وجه د عاقد تصرف صحیح کاوه لپاره دده عقد په دې احتمال یعنی مقابله د،،فرد بالفرد من غیر جنسه،، باندې محمول کولې شی.

وَفِيهِ تَغْيِيرُ وَصْفِهِ او ددې پشان مقابله باندې په محمول کولوکې د عقد وصف متغیر کیږی لَا أَصْلِهِ ددې اصل نه متغیر کیږی لِأَنَّهُ يَبْقَى مُوجِبُهُ الْأَصْلِيُّ ځکه چې ددې اصلی موجب پاتې کیږی وَهُوَ ثُبُوتُ الْمِلْكِ فِي الْكُلِّ بِمُقَابَلَةِ الْكُلِّ او حکم اصلی دکُل په مقابله کې په کُل کې ملك ثابتول دی.

تشریح:- پاتې شو د امام شافعی او امام زفر رحمهما الله دا وئیل،چه په مقابله د فرد بالفرد کې عقد غیرمتغیر کول لازمیږی.نو موږ وایو.چه اصل عقد متغیر کول نه لازمیږی.بلکه وصف عقد متغیرکول لازمیږی.د عقد وصف ځکه متغیر کیږی.چه د مقابله کل بالکل احتمال کې بتواره ( تقسیم) د شیوع په طور وه.دا پریخودلې شوه.اوپه مقابله د،،فرد بالفرد من غیرجنسه،،چه په دې کې بتواره په متعین طورباندې جلا جلا وی.دا مراد اخستې شوې دې.نوګویا د عقد یو وصف یعنی د شیوع طریقه پریښودې شوې ده. دوهم وصف یعنی د تعین طریقه مراد اخستې شوې ده.او اصل عقدځکه متغیرنشو.چه د عقد حکم اصلی دادې.چه د کل په مقابله کې په کل کې ملکیت ثابت شی.یعنی د دوې (دوه) درهمو اود یو دینار مالك یو عاقد شی.اود یو درهم اود دوې (دوه) دینارو مالك دوهم عاقد شی.اودا خبره په مقابله د کل بالکل او په مقابله د فرد بالفرد دواړو صورتونوکې متحقق کیږی.اوهرکله چې په دواړو صورتونوکې د کل په مقابله کې په کل کې ملکیت ثابتیږی.نو معلومه شوه.چه اصل عقد متغیر نشو.بلکه وصف عقد متغیرشوې دی.او اصل عقد متغیر کول اګرچه جائز نه دی. خو وصف عقد متغیرکول جائز دی.او هرکله چې وصف عقد متغیرکول جائز دی.نو په متن کې به د بیع ذکرشوې صورت هم جائز وی.

وَصَارَ هَذَا كَمَا إِذَا بَاعَ نِصْفَ عَبْدٍ اودا داسې شوه.لکه چې یوکس دداسې غلام نیم خرڅ کړو مُشْتَرَكٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ کوم چې دده او دده د غیر په منځ کې مشترك دې يَنْصَرِفُ إِلَى نَصِيبِهِ تَصْحِيحًا لِتَصَرُّفِهِ نودا بیع دده د تصرف صحیح کاوه لپاره دده برخې (حصې) اړخ ته ګرځولې شی.

تشریح:- د دې مثال داسې دې.لکه یو غلام د دوې (دوه) کسانو په مینځ کې مشترك وی.په دوی کې یوکس نصف

غلام خرڅ کړې وي. نودا نصف مطلق دې. دا احتمال هم شته. چه ده خپله نصف برخه مراد اخستې وي. اودا احتمال هم شته. چه د دوهم اندېوالان نصف برخه ئې مراد اخستې وي. او په دې طريقه بيع ناجائز وي. خود بائع دعقد تصرف صحيح کاوه لپاره هم دده برخې (حصې) اړخ ته عقد ګرځولې شي. او په دې کې زيات نه زيات وصف متغير کيږي. په دې طريقه چې مطلق نصف غلام مراد اخستلو په صورت کې شيوع وو. اود بائع برخه مراد اخستلو په صورت کې تعين دې. نولکه څنګه چې د عقدصحيح کاوه لپاره په دې مسئله کې د وصف د تغير باوجود عقد د بائع برخې (حصې) اړخ ته ګرځولې شي. دغه ډول د متن په مسئله کې هم د وصف د تغير باوجود، عقد صحيح کاوه لپاره هر يو عوض خلاف جنس اړخ ته ګرځولې شي.

## د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله د مثال جواب

بخلاف ماعَدَّيْنَ الْمَسَائِل په خلاف د هغه مسئلو کوم چې شمار کړې شوي دي أَمَّا مَسْأَلَةُ الْمُرَابَحَةِ بهرحال مسئله د مرابحه فلِأَنَّهُ يَصِيرُ تَوْلِيَةً فِي الْقَلْبِ بِصَرْفِ الرِّبْحِ كُلِّهِ إِلَى الثَّوْبِ نو ځکه چې ټوله نفع د کپړې اړخ ته ګرځولو سره په ګړه کې عقد مرابحه بدليږي. او توليه جوړيږي وَالطَّرِيقُ فِي الْمَسْأَلَةِ الثَّانِيَةِ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ او په دويمه مسئله کې د جواز طريقه غيرمتعين ده لِأَنَّهُ يُمْكِنُ صَرْفُ الزِّيَادَةِ عَلَى الْأَلْفِ إِلَى الْمُشْتَرِي ځکه چې د يو زر نه زيات هم اخستې شوی غلام اړخ ته ګرځول ممکن دی وَفِي الثَّالِثَةِ أُضِيفَ الْبَيْعُ إِلَى الْمُنَكَّرِ او په دريمه مسئله کې بيع غيرمعين غلام اړخ ته منسوب کړې شوې ده وَهُوَ لَيْسَ بِمَحَلٍّ لِلْبَيْعِ حالانکه دا د بيع محل نه دې وَالْمُعَيَّنُ ضِدُّهُ او معين دده ضد دې وَفِي الْأَخِيرَةِ الْعَقْدُ انْعَقَدَ صَحِيحًا او په آخری مسئله کې عقد صحيح منعقد شوې دې وَالْفَسَادُ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ او فساد د بقاء په حالت کې دې وَكَلَامُنَا فِي الِابْتِدَاءِ او زموږ کلام په ابتداء د عقد کې دې.

حل اللغة: اضيف-اضافت شوې-المنکر-غيرمعلوم-الابتداء-شروع-کلام-بحث

تشريح:- حضرت امام زفر او امام شافعي رحمهما الله د تصرف د تغير په عدم جواز باندې کوم مسائل د مثال په طور پيش کړي وو. ددې ځانې نه د هغه مسئلو ځواب دې. ① د مرابحه مسئلې ځواب دادې. که پوره نفع کپړې اړخ ته اوګرځولې شي. نو په ګړه کې به بيع توليه وي. ځکه چې هرکله پوره نفع يعنې پنځه درهمه کپړې اړخ ته اوګرځولې شو. نو ګړه چې ددې وزن لس درهمه وو. دلس درهمه په عوض واخستې شو. او هم د لس درهمو په عوض خرڅ کړې شو. اود نفع او تاوان نه بغير خرڅولو ته بيع توليه وئيلې شي. نو په ګړه کې بيع توليه شوه. او توليه چونکه د مرابحه ضد دې. او شئ خپل ضد ته نه شامليږي. ځکه به توليه مرابحه ته نه شامليږي. نو ټوله نفع کپړې اړخ ته ګرځولو کې اګرچه عقد صحيح کيږي. خو اصل عقد متغير کيږي. يعنې د مرابحه نه بدليږي. او توليه جوړيږي. ځکه چې د کپړې او ګړې اخستونکي په صراحت سره دا وئيلي وو. چه ما ګړه او کپړه مرابحة خرڅ کړل. يعنې په شل درهمه مې واخستل. اود پنځويشت درهمو په عوض مې خرڅ کړل. بهرحال په دې مسئله کې ټوله نفع کپړې اړخ ته ګرځولو کې اصل عقد متغير کيږي. او وړاندې تيرشوی دی. چه د متن په مسئله کې په عوضينو کې هريو عوض خلاف جنس اړخ ته ګرځولو کې د عقد وصف متغير کيږي. اصل عقدنه متغير کيږي. نو په دومره قدرې توپير سره د متن مسئله په دې مسئله باندې قياس کول. اود متن مسئله ددې مسئلې مثال جوړول څنګه صحيح کيدلې شي. ② د دويمې مسئلې ځواب دادې. چه تاسو د «شراء ماباع باقل مما باع قبل نقد الثمن» خرابۍ نه بچ کيدلو لپاره دا اووئيل. چه کوم غلام د زر درهمو په عوض اخستې شوې وو. چه هرکله دا او دوهم غلام د ثمن ادا کاوه نه وړاندې د بائع په لاس د پنځلس سوه درهمو په عوض خرڅ کړل. نود اخستې شوی غلام ثمن زر درهمه اوګرځولې شو. اود دوهم پنځه سوه درهم ثمن مقررشو. خو ددې باوجود د زر درهمو په عوض اخستې شوی غلام کې بيع جائز نه ده. تاسو خودا ګڼړئ. چه د عقد متغير کيدلو په وجه بيع ناجائز ده. حالانکه داسې نه ده. بلکه د عدم جواز وجه داده. چه په دې صورت کې د جواز طريقه متعين نه ده. ځکه چې د عقدجائز کاوه لپاره چې لکه څنګه د زر درهمو په عوض اخستې شوی غلام اړخ ته زر درهمه ګرځولې شي. دغه ډول يو زر يو درهم او يو زر



درې درهم او يو زر څلور درهم او ددې نه زيات اړخ ته هم ګرځولې شي. دا واړه صورتونه برابر دي. يو ته په بل باندې هيڅ ترجيح نشته. نوکه يو صورت ته ترجيح ورکړې شوه. نو ترجيح بلامرجح به لازم شي. اوکه ترجيح ورنکړې شي. نو ثمن اود جواز طريقه مجهول کيدلو په وجه به عقد فاسد شي. اود متن په مسئله کې طريقه د جواز متعين ده. يعنې هر عوض خلاف جنس اړخ ته ګرځول. نوهرکله چې د متن په مسئله کې طريقه د جواز متعين ده. اوپه دې مسئله کې طريقه د جواز غيرمتعين ده. نو يو په بل باندې قياس کول او مثال جوړول به ټيک وي. ③ د دريمې مسئلې ځواب دادې. چه هرکله يوکس خپل اود بل کس غلام يوځائې کړل. اووې وئيل. چه ما ستا په لاس دې دواړو کې يوغلام خرڅ کړو. نوبيع نسبت منکر يعنې غيرمعين غلام اړخ ته شوې دې. حالانکه غيرمعين غلام مجهول کيدلو په وجه د بيع محل يعنې مبيع نشي کيدلې. او معين چونکه د منکر او غيرمعين ضد دې. او شئ خپل ضد ته نه شامليږي. په دې وجه غيرمعين يعنې لفظ «احدهما» وئيلو سره معين يعنې دده خپل غلام هم مراد نشي اخستلې. نو په دې مسئله کې د بيع ناجائز کيدلو وجه مبيع يعنې د غلام مجهول کيدل دي. دعقد متغير کيدل نه دي. په دې وجه د تغيرعقد په مثال کې دا مسئله پيش کول هم ټيک نه دي. ④ د څلورمې مسئلې ځواب دادې. چه هرکله يو درهم او يوه کپړه نې د يو درهم او يوې کپړې په عوض خرڅ کړل. نودا عقد صحيح واقع شوې وو. خوکله چې د قبضه کاوه نه بغير عاقدين جلا شو. نو په دواړه درهمو کې عقد فاسد شو. حاصل دا چې په دې مسئله کې په ابتداء کې عقد صحيح وو. خو په حالت د بقاء کې فاسد شوې دې. اود متن په مسئله کې زموږ کلام د عقد په ابتداء کې دې. يعنې په عوضينو کې هريو عوض که خلاف جنس اړخ ته اونه ګرځولې شو. نو عقد به ابتداءً فاسد وي. نو هرکله چې خلاف جنس اړخ ته د نه ګرځولو په صورت کې د متن په مسئله کې ابتداءً فساد پيدا شو. او په دې مسئله کې د قبضه نه کاوه په وجه بقاءً عقد فاسد شو. نو په دې دواړو مسئلو کې چونکه ډير لوې توپير دې. په دې وجه د يو بل مثال ګرځول ټيک نه دی.

## د يوولسو درهمو، لس درهمه او يو دينار سره د بيع حکم

قَالَ فرمايي وَمَنْ بَاعَ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَدِينَارٍ او که يوکس يوولس درهمه، د لس درهمو او يودينار په عوض خرڅ کړل جَازَ الْبَيْعُ نو بيع جائز ده وَتَكُونُ الْعَشَرَةُ بِمِثْلِهَا او لس درهم به د لس درهمو په عوض وي. وَالدِّينَارُ بِدِرْهَمٍ او يو دينار به د يو درهم په عوض کې شي لِأَنَّ شَرْطَ الْبَيْعِ فِي الدَّرَاهِمِ التَّمَاثُلُ ځکه چې په دراهمو کې د بيع شرط برابر کيدل دی عَلَى مَا رَوَيْنَا د هغه حديث مطابق کوم چې موږ روايت کړې دې فَالظَّاهِرُ أَنَّهُ أَرَادَ بِهِ ذٰلِكَ نو ښکاره هم دا ده. چه ده به په دې بيع سره هم دا اراده کړې وي. فَبَقِيَ الدِّرْهَمُ بِالدِّينَارِ او يو درهم د يو دينار په مقابله کې پاته شو وَهُمَا جِنْسَانِ په داسې حال کې چې دا دواړه دوې (دوه) جنسه دی وَلَا يُعْتَبَرُ التَّسَاوِي فِيهِمَا او په دوې (دوه) جنسونو کې د برابروالی اعتبار نشي کولې.

حل اللغة: التماثل-ديوبل پشان کيدل-تبلغ-رسيږي-التراب-خاوره-العوض-بدله

تشريح:- مسئله داده. که يوکس يوولس درهمه، د لس درهمو او يودينار په عوض خرڅ کړل. نودا بيع به جائز وي. اودا به وئيلې شي. چه په يوولس درهموکې لس درهمه د لس درهمو په مقابله کې دی. او پاته شو يو درهم، نودا د يو دينار په مقابله کې دې. دليل دادې. چه په حديث مشهور «الفضة بالفضة.....الخ» سره ثابت دي. چه په دراهمو کې د بيع جائزکيدلو شرط د دواړو عوضونو برابر او مساوی کيدل دی. او عاقدين چونکه مسلمانان دی. په دې وجه ددوی ښکاره حال ددې خبرې تقاضا کوي. چه دوی به دجائز عقد ارتکاب کړې وي. د عقد فاسد اقدام به ئې نه وی کړې. اود عقد جائز صورت هم هغه دې. کوم چې ابو الحسين قدوري رح ذکرکړې دې. چه لس درهمه به دلسو درهمو په عوض کې شي. او پاته يو درهم به د يو دينار په عوض کې شي. او درهم او دينار چونکه دوې (دوه) مختلف جنسه دی. په دې وجه به په دې کې مساوات او برابری هم معتبر نه وی. ځکه چې د برابرئ کيدل د اتحاد جنس په وخت شرط وی. د اختلافِ جنس په وخت شرط نه وی.

## د سپينو او سرو زرو خپل جنس سره د کموالي په صورت کښي د بل څيز ملاوول او د بيع حکم

وَلَوْتَبَايَعَافِضَّةً بِفِضَّةٍ أَوْذَهَبًابِذَهَبٍ اوکه دوي (دوه) کسانو، پخپل منځ کي) سپين زر د سپينو زرو په عوض يا سره زر د سرو زرو په عوض خرڅ کړل وَأَحَدُهُمَاأَقَلُّ په داسي حال کښي چي په دي دواړو عوضونوکي يو عوض کم دي وَمَعَ أَقَلِّهِمَاشَيْءٌ آخَرُتَبْلُغُ قِيمَتُهُ بَاقِي الْفِضَّةِ او کم سره بل يو داسي شئ دي، چه ددې قيمت پاته سپينو زرو ته رسيږي جَازَالْبَيْعُ مِنْ غَيْرِكَرَاهِيَةٍ نو بيع بلاكراهته جائز ده وَإِنْ لَمْ تَبْلُغْ اوکه پاته سپين زرو ته نه رسيږي فَمَعَ الْكَرَاهَةِ نو مع الكراهت جائز ده وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ قِيمَةٌ كَالتُّرَابِ اوکه ددې شئ هيڅ قيمت نه وي،لکه خاوره لَايَجُوزُالْبَيْعُ نو بيع به جائز نه وي لِتَحَقُّقِ الرِّبَا ځکه چي رباء متحقق ده إِذِالزِّيَادَةُلَايُقَابِلُهَاعِوَضٌ ځکه هغه زياتوالي چي ددې په مقابله کي هيڅ عوض نه وي فَيَكُونُ رِبًا هغې ته رباء وئيلي شي.

**تشريح:-** صورت د مسئلي دادي.که يوکس سپين زر د سپينو زرو په عوض،يا سره زر د سرو زرو په عوض خرڅ کړل.او په دي دواړو کي يو عوض د وزن په اعتبار سره کم دي.اوکم عوض سره څه بل شئ دي.مثلاً يوکس لس درهم اودي سره څه بل شئ د پنځلس درهمو په عوض خرڅ کړل.نو کوم شئ چي لس درهمو سره يوځائي ورکړي شوي دي.ددې به څه قيمت وي .يا به نه وي.که ددې څه قيمت نه وي.لکه خاوره،نو په دي صورت کي به بيع جائز نه وي.ځکه چي په کوم اړخ کي پنځلس درهمه دي.په هغه اړخ کي پنځه درهمه په دي طريقه زياتي دي.چه په دوهم اړخ کي ددې په مقابله کي هيڅ عوض نشته.او په عقد بيع کي داسي زياتوالي چي ددې په مقابله کي عوض نه وي.هغې ته رباء او سود وئيلي شي.ځکه به په دي صورت کي رباء لازميږي.او رباء حرام ده.نود بيع دا صورت به ناجائز او حرام وي.اوکه ددې شئ څه قيمت وي.نو بيا دوي (دوه) صورتونه دي.ياخو به دا قيمت پاته سپينو زرو يعني پنځو درهمو ته رسيږي.يا به نه رسيږي.که ددې قيمت پاته سپينو زرو يعني پنځو درهمو ته رسيدلو.نودا بيع بلاكراهت جائز ده.اوکه ددې قيمت پاته سپينو زرو يعني پنځو درهمو ته نه رسيدلو.نودا بيع به مع الكراهت جائز وي.اودا صورت ځکه مکروه دي،چه خلګ به په داسي کولوکي د رباء ساقطولو حيله جوړه وي.يعني د سود لين دين به کوي.او ددې د جواز لپاره به داسي کوي.چه کم عوض سره به دوي (دوه) سوه ګرام غنم يوځائي کوي.اود جواز حيلي سره د يوحرام ارتکاب که حرام نه وي.نو مکروه به خامخا وي.په دي وجه دا صورت مکروه ګرځولي شوي دي.

## د پور يو دينار په قرضخواه باندي دلس درهمو په عوض د بيع حکم

فَالوَمَنْ كَانَ لَهُ عَلَى آخَرَعَشَرَةُ دَرَاهِمَ اود يو سړي په بل باندي لس درهم وي فَبَاعَهُ الَّذِي عَلَيْهِ الْعَشَرَةُ دِينَارًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ نو په چاچه لس درهم دي.هغه په قرضخواه باندي يو دينار د لس درهمو په عوض خرڅ کړو وَدَفَعَ الدِّينَارَ او دينار ني ورکړو وَتَقَاصَّاالْعَشَرَةَ بِالْعَشَرَةِ او( دواړو) پخپله رضامندئ سره لس درهم د لسو درهمو سره بدل کړل فَهُوَجَائِزٌ نو دا جائز دی وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ او ددې مسئلې مطلب دادي إِذَابَاعَ بِعَشَرَةٍ مُطْلَقَةٍ چي ده مطلقاً د لس درهمو په عوض خرڅ کړل وَوَجْهُهُ أَنَّهُ يَجِبُ بِهَذَاالْعَقْدِثَمَنٌ اود جواز وجه داده.چه ددې مطلق عقد په وجه به داسي ثمن واجب وي يَجِبُ عَلَيْهِ تَعْيِينُهُ بِالْقَبْضِ د کوم چي قبضي سره متعين کول لازم دی لِمَاذَكَرْنَاوَالدَّيْنُ لَيْسَ بِهَذِهِ الصِّفَةِ هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکرکړي دي.او قرضه په دي صفت باندي نه ده فَلَاتَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِنَفْسِ الْمَبِيعِ لِعَدَمِ الْمُجَانَسَةِ د نود دواړو جنس يو نه کيدلو په وجه به په نفس بيع سره مقاصه نه واقع کيږي فَإِذَاتَقَاصَّا نو کله ني چي مقاصه اوکړله يَتَضَمَّنُ ذَلِكَ فَسْخَ الْأَوَّلِ وَالْإِضَافَةَ إِلَى الدَّيْنِ نودا د عقداول ( عقدصرف) فسخ کولوته،او دين ( کوم چي د قرضدار په ذمه دی) اړخ ته مضاف کاوه ته متضمن ده إِذْلَوْلَاذَلِكَ يَكُونُ اسْتِبْدَالًابِبَدَلِ الصَّرْفِ ځکه که دا نه وي.نو دعقدصرف بدل سره به استبدال اوشی وَفِي الْإِضَافَةِإِلَى الدَّيْنِ تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او تيري شوي پور اړخ ته نسبت کولوکي په نفس عقد سره مقاصه واقع کيږي عَلَى مَانُبَيِّنُهُ لکه چي موږ به بيان کړو.



**حل اللغة:** ① الاستبدال-طلب د بدلولو-② الدين-قرض-③ المقاصة-ادل بدل کول-④ تقع-واقع کيږي

**تشريح:-** صورت د مسئلي دادي.چه د يو کس په بل کس باندي لس درهمه قرضه ده.نو قرضداري قرضخواه باندي د لس درهمو په عوض يو دينار خرڅ کړو. يعني قرضداري خپل دينار مطلقاً د لس درهمو په عوض خرڅ کړل.يعني د دينار بيع ني هغه دراهمو اړخ ته منسوب نه کړله.کوم چي دقرضخواه په قرضداري باندي واجب دی.بيا چي کله قرضداری قرضخواه ته دينار ورکړو.او دواړو خپل منځ کي په رضامندئ سره د دينار ثمن يعني د لس درهمو قرضه لس درهمو سره مقاصه اوکړه.يعني ادل بدل ني اوکړو.او معامله ني برابر برابر کړله.په دي طريقه چي د قرضداري په ذمه د قرضخواه کوم لس درهمه دی.دا دهغې په بدله کي شو.کوم چي د قرضداري د قرضخواه په ذمه د دينار د ثمن په طور واجب دی.اوکوم لس درهمه چي د دينار د ثمن په طور د قرضداري، د قرضخواه په ذمه واجب دی.دا د هغه لس درهمو په بدله کي شو.کوم چي د قرضخواه په قرضداري باندي د پور په طور واجب دی.نوجائز دي. ځکه ددې عقدمطلق يعني د «بيع الدينار بعشرة دراهم» په وجه قرضخواه باندي داسي ثمن يعني داسي لس درهمه واجبيږي.چه دا قبضي سره معين کول واجب دی.ځکه چي وړاندي تيرشوی دی.چه په عقدصرف کي د جداکيدلو نه وړاندي په دواړو عوضونوباندي قبضه کول ضروری دی.چه دواړه عوضونه متعين شی.اودا خبره منلي شوې ده.چه درهم او دينار د قبضه کاوه نه بغير نه متعين کيږي.نود قرضداري د دينار ورکاوه نه روسته ضروري دی.چه دي په لس درهمو باندي قبضه اوکړي.اودا متعين کړي.يعني د قرضداري چي په قرضخواه باندي کوم لس درهمه واجب دی.د هغې په قبضه سره متعين کول واجب دی.اود قرضخواه په قرضداري باندي کوم لس درهمه د پور په طور واجب دی.د هغې په قبضه سره متعين کول لازم نه دی.

حاصل دا چي په قرضداري باندي کوم لس درهمه واجب دی.د هغې متعين کول لازم نه دی.او په قرضخواه چي کوم لس درهم دی.د هغې په قبضه سره متعين کول لازم دی.نو هرکله چي يو اړخ ته داسي درهم دی.چه د هغې تعين واجب دي.او بل اړخ ته داسي دراهم دی.چه د هغې تعين واجب نه دي.نود دواړو دوي (دوه) مختلف جنسونه شو.او په کومو دوي (دوه) څيزونوکي چي اختلاف جنس وی.په هغې کي مقاصه نشی کيدلي.ځکه چي مقاصه د برابر سرابر کيدلو نوم دي.اود اتحاد جنس نه بغير برابری ممکن نه ده.په دي وجه د اختلاف جنس په صورت کي مقاصه نشی کيدلي.او هرکله چي د اختلاف جنس په صورت کي مقاصه ممکن نه ده.نو په ذکرشوي مسئله کي په نفس بيع سره مقاصه نه واقع کيږي.خوکله چي قرضخواه او قرضداري خپل منځ کي په رضامندئ سره د مقاصه کاوه اقدام اوکړلو.نو ددوی اقدام صحيح کول ضروری دی.خو په دينارو او مطلقه دراهمو په مينځ کي عقدصرف باته ساتل،او ددوی اقدام صحيح کول ممکن نه دی.لکه څنګه چي اوس تير شو.

نو موږ اووئيل.چه هرکله دي دواړو مقاصه اوکړله.نودا مقاصه کول به دوي (دوه) خبرو ته متضمن وی.① يوه داچه په ړومبی عقدصرف يعني دينار او مطلقه دراهمو په مينځ کي چي کوم عقدصرف وو.هغه فسخ شو.② دوهم داچه عقدهغه لس درهمو اړخ ته منسوب شو.کوم لس درهمه چي د قرضداري په ذمه واجب دی.ګويا قرضداري دا اووئيل.چه مادا دينار ستا پلاس د هغه لس درهمو په عوض خرڅ کړلو.کوم چي ستا په ماباندي واجب دی.اودا مقاصه د عقداول فسخ او پور اړخ ته منسوب کيدلوته ځکه متضمن دي.که داسي اونشو.نود قبضي نه وړاندي به د بدل صرف په عوض د بل شئ اخستل لازم شی.يعني که عقد اول فسخ نشو.نو دراهم طلقه کوم چي د دينار په عوض قرضخواه باندي لازم دی.په هغې باندي د قبضه کاوه نه وړاندي د قرضداري ددې په عوض هغه دراهم اخستل لازميږي.کوم چي په ده باندي د پور په طور لازم دی.اودا خبره يعني د قبضي نه وړاندي د بدل صرف استبدال ناجائز دي.نو هرکله چي د عقد اول فسخ ته د نه متضمن کيدلو نه دا خرابی يعني د بدل صرف قبل القبض استبدال لازميږي. نوموږ وايو.چه مقاصه کول،د عقد اول فسخ او پور اړخ ته عقدمنسوب کيدلو ته متضمن دي.اوهرکله چي عقد اول فسخ شو.اود دينار بيع هغه دراهمو اړخ ته اوشوه.کوم دراهم چي په قرضداري د پور په طور واجب دی.نو مقاصه کول به ټيک وی.لکه څنګه چي د ړومبی صورت لاتدي تيرشوی

دی.که قرضدار خپل دينار دپور د دراهمو په عوض خرځ کړی.نو په نفس بيع سره مقاصه واقع کيږی.نوهم دغه ډول په دوهم صورت کې به هم مقاصه جائز وی.

وَالْفَسْخُ قَدْ يَثْبُتُ بِطَرِيْقِ الْاِقْتِضَاءِ او فسخ کله د اقتضاء په طريقه ثابتيږی كَمَا اِذَا تَبَايَعَا بِاَلْفٍ لکه چې کله عاقدينو د يو زر په عوض بيع اوکړله ثُمَّ بِاَلْفٍ وَخَمْسِمِائَةٍ بيا ئې د پنځلس سوه په عوض اوکړله.

تشريح:- دا عبارت د يو سوال ځواب دی.سوال دادی.چه هرکله د مقاصه په وجه عقداول فسخ شو.نود دينار بائع يعنی په قرضداری واجب دی.چه دې د اقاله په حکم دينار باندې قبضه اوکړی.ځکه چې اقاله يعنی د بيع د فسخ حکم دادی.چه بائع په مبيع باندې او مشتری په ثمن باندې قبضه اوکړی.نوهرکله چې د دينار او مطلقه دراهمو په مينځ کې بيع فسخ شوه.نو قرضداری چې کوم دينار قرضخواه ته ورکړی وو.هغه واپس اخستل پکار دی.حالانکه د مقاصه په صورت کې دينار واپس نشی اخستې؟

ځواب:ددې ځواب دادی.چه دلته کې د عقداول فسخ، د مقاصه په ضمن کې اقتضاءً ثابت شوی ده.يعنی مقصود خو مقاصه کول وو.خود مقاصه صحيح کاوه لپاره ضمناً او اقتضاءً عقداول فسخ شوی دی.لکه بائع او مشتری په زر درهمو باندې بيع مقررکړه.بيا ئې هم دا بيع په پنځلس سوه باندې جوړه کړه.نو ړومبی بيع کومه چې په زر درهمه باندې واقع شوې وه.د دويمې بيع په وجه فسخ شوې ده.يعنی هرکله چې په پنځلس سوه درهمو باندې بيع صحيح ده.نو ددې تقاضا داده.چه ړومبی بيع کومه چې په زر درهمه باندې واقع شوې وه.فسخ کيږی.نو ثابته شوه.چه عقد کله اقتضاءً هم فسخ کيږی.او اقتضاءً او ضمناً د عقد فسخ کيدلو هغه حکم نه وی.کوم حکم چې قصداً د عقدفسخ کيدلو دی.نودا اعتراض کول چې دعقد اول فسخ کيدلو په وجه د دينار بائع يعنی په قرضداری باندې واجب کيدل پکار دی.چه دې په حکم د اقالې دينار باندې قبضه اوکړی. غلط دی.ځکه چې دا حکم دهغه اقالې اود فسخ دی.کوم چې قصداً وی.اوکومه فسخ چې ضمناً او اقتضاءً وی.د هغې دا حکم نه دی.

وَزُفَرُ يُخَالِفُهُ فِيْهِ او امام زفر رح په دې کې زموږ مخالف دی لِاَنَّهُ لَا يَقُوْلُ بِالْاِقْتِضَاءِ ځکه چې دی د اقتضاء قائل نه دی.

تشريح:- حضرت امام زفر رح په ذکرشوی حکم کې زموږ مخالف دی.ځکه چې دی د اقتضاء قائل نه دی.نو هرکله چې دده په نيز د اقتضاء په وجه عقداول فسخ نشو.نو عقداول يعنی دينار اود مطلقه دراهمو په مينځ کې عقداول پاته شو.اوهرکله چې عقداول پاته شو.نو مقاصه به هم جائز نه وی.اوهم دا قياس دی اووجه د قياس داده.چه د قرضداری لپاره په قرضخواه باندې د يو دينار په عوض مطلقاً لس درهمه واجب وو.خو چې کله مقاصه اوشوه.نو گويا قرضداری د لس درهم مطلق په بدله کې د پور لس درهمه دی.او په داسې کاوه کې د قبضه نه وړاندې د بدل صرف عوض د بل شی اخستل لازميږی.اودا وړاندې تيرشوی دی.چه د بيع صرف دعوض په بدل کې د قبضه نه وړاندې د بل څه شی اخستل جائز نه دی.ځکه به دا مقاصه کول هم جائز نه وی.

وَهٰذَا اودا هغه وخت دی اِذَا كَانَ الدَّيْنُ سَابِقًا کله چې قرضه مخکې وی فَاِنْ كَانَ لَاحِقًا خوکه قرضه روسته لاحق شوی وی فَكَذٰلِكَ فِىْ اَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ نو په دوی (دوه) روايتونوکې د اصح روايت مطابق دا هم جائز دی لِتَضَمُّنِهِ انْفِسَاخَ الْاَوَّلِ وَالْاِضَافَةَ اِلَى الدَّيْنِ ځکه چې دا د عقداول فسخ اود داسې پور اړخ ته نسبت ته متضمن ده قَائِمٌ وَقْتَ تَحْوِيْلِ الْعَقْدِ کوم چې د عقد بدليدلو په وخت موجود ده فَكَفٰى ذٰلِكَ لِلْجَوَازِ اود جواز لپاره دومره کافی ده.

حل اللغة: ① السابق-مخکنی-② اللاحق-روستنی-③ تحويل-بدليدل-④ كفى-کافی ده

تشريح:- علامه مرغينانی رح فرمائی.چه د مقاصه جائز کيدل، د عقداول فسخ کيدل،او عقد د پور دراهمو اړخ ته منسوب کيدل.هغه وخت دی.چه کله قرضه په عقد مقدم وی.خوکه قرضه روسته لاحق شوی وی.او عقد وړاندې شوی وی.مثلاً يوکس يو دينار دلس درهمو په عوض واخستلو.او په دينار باندې ئې قبضه اوکړله.بيا د دينار اخستونکی يوه کېږه د دينار بائع باندې دلس درهمو په عوض خرڅه کړله.بيا دواړو مقاصه کول اوغوښتل.يعنی د دينار په اخستونکی باندې د دينار عوض کوم لس درهمه دی.اود دينار په بائع باندې د کېږې عوض کوم لس



درهمه دی.په هغې کې مقاصه يعنی ادل بدل کول اوغواړی.نو په دې کې دوی (دوه) روايتونه دی.① يو روايت د ابوسليمان دی.کوم چې فخرالاسلام هم خوښ کړی دی.او مصنف رح دې ته اصح ونيلی دی.ددې روايت مطابق مقاصه جائز ده.② دوهم روايت د ابوحفص دی.کوم چې شمس الآئمه او قاضی خان خوښ کړی دی.ددې مطابق به مقاصه جائز نه وی.د دوهم روايت وجه داده.چه په دې صورت کې دينار او دراهمو په مينځ کې عقدصرف مخکې واقع شوی دی.اود دينار په بائع باندې د لس درهمو قرضه د عقد نه روسته لاحق شوی ده.حالانکه رسول الله ﷺ په مخکنی دين کې مقاصه جائز کړې ده.په دين لاحقه کې ئې نه ده جائز کړې.لکه د ابن عمر رضی الله عنه حديث دی.

«عن ابن عمر رضی الله عنه انه قال لرسول الله ﷺ انی اكرى ابلا بالبقيع الى مكة بالدراهم فآخذ مكانها دنانير اوقال بالعكس فقال ﷺ لا بأس بذلك» يعنی،،ابن عمر رضی الله عنه رسول اکرم ﷺ ته اوفرمائيل.چې زه يواوښ د بقيع نه مکې پورې د دراهمو په عوض په کرايه باندې ورکوم.بيا زه ددې په عوض دنانير اخلم.يا ئې ددې برعکس اووئيل.نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه په دې کې هيڅ حرج نشته،،اوگورئ چې کله عبدالله ابن عمر رضی الله عنه خپل اوښ د دراهمو په عوض په کرايه باندې ورکړو.نو په کرايه باندې اخستونکی د هغې په اندازه د دراهمو په عوض عبدالله بن عمر رضی الله عنه باندې دنانير خرڅ کړل.بيا عبدالله بن عمر رضی الله عنه په دنانيرو باندې قبضه اوکړله.اود درهم مقاصه ئې اوکړله.نو په دې اړه کې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.چه په دې کې هيڅ حرج نشته. په دې واقعه کې اوښ په کرايه باندې د اخستونکی په ذمه کوم دراهم پور دی.دا د دنانيرو په بيع باندې مقدم دی.اوهم دې ته رسول الله ﷺ «لا بأس بذلك» اووئيل.او جائز ئې اوفرمائيل.نو ثابته شوه.چه رسول الله ﷺ په تيرشوی دين کې مقاصه جائز کړې ده.په دين لاحق کې ئې ... کړې.د ړومبی روايت وجه داده.چه مقاصه د عقداول فسخ ته متضمن ده.اوددې خبرې ته متضمن ده.چه عقد داسې عقد اړخ ته منسوب دی.کومه قرضه چې د عقد بدليدلو په وخت موجود ده.يعنی د دينار په بائع باندې د لس درهمو کومه قرضه ده.دا اگرچه د دينار او دراهمو په مينځ کې په واقع کيدونکی عقد باندې مقدم نه ده.خو په مقاصه باندې مقدم ده.اود مقاصه جائز کيدلو لپاره دومره کافی ده.چه قرضه د مقاصه کاوه په وخت موجود وی.او دلته کې چونکه د مقاصه کاوه په وخت د دينار د بائع په ذمه قرضه موجود ده.ځکه به مقاصه په دې صورت کې هم جائز وی.

**يو صحيح درهم او دوې (دوه) درهمه ماتې پيسې ،د دوې (دوه) صحيح درهمو اود يو درهم ماتو پيسو سره د بيع حکم**

قَالَ فرمايی وَيَجُوْزُ بَيْعُ دِرْهَمٍ صَحِيْحٍ وَدِرْهَمَىْ غَلَّةٍ بِدِرْهَمَيْنِ صَحِيْحَيْنِ وَدِرْهَمٍ غَلَّةٍ اود يو روغ (ثابت) درهم او د دوې (دوه) ماتو درهمو بيع، د دوې (دوه) ثابت دراهمو او يو مات درهم په عوض جائز ده وَالْغَلَّةُ مَا يَرُدُّهُ بَيْتُ الْمَالِ او غله هغه درهم دی.کوم چې بيت المال واپس کړی وَيَأْخُذُهُ التُّجَّارُ او تاجر (او سوداگر) خلگ ئې اخلی.

حل اللغة: ① صحيح-روغ-② الغلة-ماتې-③ التجار-سوداگر-④ يرد-واپس کوی

تشريح:- درهم صحيح يو پوره ثابت درهم ته وائی.يعنی د چينج نه بغير درهم،درهم صحيح دادی.لکه زموږ په زمانه کې د يوې روپۍ لوټ يا د يوې روپۍ سکه، د صحيح درهم په مرتبه کې دی.او درهم ،،غله،،(د غين فتحه اود لام په شد سره) د يو درهم هغه اجزاء او ټکړو ته وائی.کوم چې په وزن او ماليت کې د يو درهم برابر وی.لکه زموږ په زمانه کې د يو روپۍ چينج، اتانيز (پنځوس پيسې) څلورانيز (پنځويشت پيسې) او لس او پنځه پيسې سکې دی.مثلاً دوې (دوه) اتانيزونه د يوې روپۍ ماليت برابر وی.او څلور څلور انيزونه هم د يوې روپۍ ماليت برابر وی.اود لس پيسو لس سکې يا د پنځو پيسو شل سکې هم د يوې روپۍ د ماليت برابر دی.هم دې چينج ته په بعض علاقوکښې ماتې پيسې او ميده پيسې ونيلې شی.او زموږ په علاقو کې ورته چينج يا ماتې پيسې ونيلې شی بهرحال درهم غله کهوټه درهم ته نه وائی.بلکه د يو درهم چينج او په وزن کې د يو درهم ټکړو اواجزاؤ ته وائی.علامه مرغينانی رح فرمائی.چه درهم غله هغه دی.کوم چې سوداگر قبلوی.خو بيت المال ئې نه قبلوی.خود بيت المال نه قبلول ددې د کهوټه کيدلو په وجه نه دی.بلکه د چينج او ميده کيدلو په وجه دی.ځکه چې د چينج او

ميده پيسو ساتنه او ددې په شمارلوكې ډير تكليف او پريشاني راپيښيږي.زمونږ په ملك كې هم كه په بينك كې چينج جمع كړې شي.نود بينك والا دا نه قبلوي.بلكه په لويو او معيار(خاص) بينكونوكي خو واړه نوټونه هم نه قبلوي.نود بينكونو چينج او ماتې پيسې نه قبلول ددې د كهوټه كيدلو په وجه نه دي.بلكه ددې په شمارلوكې د تكليف او (خفگان په وجه دي.

وَوَجْهُهُ تَحَقُّقُ الْمُسَاوَاةِ فِي الْوَزْنِ او ددې دجواز وجه په وزن كې مساوات موندل دي وَمَا عُرِفَ مِنْ سُقُوطِ اعْتِبَارِ الْجَوْدَةِ او وراندې معلوم شوي دي.چه د جودت (كره والي) اعتبار ساقط دې.

حل اللغة: ① تحقق-ثبوت-② المساواة-برابرى-③ سقوط-ساقط كيدل-④ الجودة-كره والي

تشريح:- ددې د جواز وجه دا ده يعنى كه يوكس يوصحيح درهم او دوې (دوه) درهم ماتې پيسې، د دوې (دوه) صحيح درهم او يو درهم ماتو پيسو په عوض خرڅ كړل.نودا بيع جائز ده.ځكه چې د وزن په اعتبار سره دواړه عوضونه برابر دي.اود درهم بيع ددرهم په عوض د جواز شرط هم دادې.او پاتې شو د درهم صحيح چينج نه كيدل،نودا ددې يو وصف دې.او بنه وصف دې.او وړاندې تيرشوي دي.چه په جنس سره د مقابله په وخت د بنه والي وصف وغيره اعتبار نه كيږي.لكه چې د مديني آقاﷺ ارشاد دې. «جيدها ورديها سواء»

## د سرو او سپينو زرو د غلبې مسئله

فَالُوْا إِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الدَّرَاهِمِ الْفِضَّةَ اوكله چې په دراهمو باندې سپين زر غالب وي فَهِيَ فِضَّةٌ نودا دراهم به سپين زر (په حكم كې) كې شمارلې شي. وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الدَّنَانِيْرِ الذَّهَبَ اوكله چې په دنانيرو كې سره زر غالب وي فَهِيَ ذَهَبٌ نوهغه د سرو زرو په حكم كې دي وَيُعْتَبَرُ فِيْهِمَا مِنْ تَحْرِيْمِ التَّفَاضُلِ او په دې كې د زياتوالى حرام كيدل داسې معتبر دي مَا يُعْتَبَرُ فِي الْجِيَادِ لكه څنګه چې په كره دراهمو كې معتبر دي حَتَّى لَا يَجُوْزُ بَيْعُ الْخَالِصَةِ بِهَا تردې چې خالص دراهم يا دنانير دداسې كوټه دراهمو يا دنانير په عوض خرڅول وَلَا بَيْعُ بَعْضِهَا بِبَعْضٍ او په دې كې بعض د بعضو په عوض خرڅول جائز نه دي إِلَّا مُتَسَاوِيًا فِي الْوَزْنِ مگر داچه په وزن كې برابر وي.

تشريح:- مسئله داده.كه په دراهموكې سپين زرغالب وي.نودا دراهم د خالصو سپينو زرو په حكم كې دي.اوكه په دنانيروكې سره زر غالب وي.نودا دنانير د خالصو سرو زرو په حكم كې دي.او په دې كې خپل جنس سره د بيع كاوه په وخت به كمې زياتې داسې حرام وي.لكه څنګه چې د خالص سرو زرو او سپينو زرو خپل جنس سره په بيع كې كمې زياتې حرام دې.كه خالص دراهم د كهوټه او ګډون شوي دراهموكې بعض د بعض په عوض خرڅ كړې شو.نود وزن په اعتبار سره به مساوات او برابرى ضروري وي.لكه څنګه چې خالص دراهم د خالص دراهمو په عوض،او خالص دنانير د خالص دنانيرو په عوض خرڅولو په صورت كې برابرى شرط ده.

وَكَذَا لَا يَجُوْزُ الْاِسْتِقْرَاضُ بِهَا او هم دغه ډول هغه كوټه دراهم يا دنانير د پور په طور اخستل جائز نه دي إِلَّا وَزْنًا خو په وزن سره (جائز دي لِأَنَّ النُّقُوْدَ لَا تَخْلُوْ عَنْ قَلِيْلِ غِشٍّ عَادَةً ځكه چې نقود (سكې) په عامه توګه (عام طور) باندې د معمولي شان كهوټ (اوګډون) نه خالى نه وي لِأَنَّهَا لَا تَنْطَبِعُ إِلَّا مَعَ الْغِشِّ ځكه چې د كهوټ نه بغير سكه نه سوانچه كيږي وَقَدْ يَكُوْنُ الْغِشُّ خِلْقِيًّا اوكله كهوټ مورزاده (پيدائشي) وي كَمَا فِي الرَّدِيْءِ مِنْهُ لكه څنګه چې په ردى سرو زرو يا سپينو زرو كې وي فَيَلْحَقُ الْقَلِيْلُ بِالرَّدَاءَةِ وَالْجَيِّدُ وَالرَّدِيْءُ سَوَاءٌ نو قليل مقدار به ردى سره ملاوولې شي.حالانكه كره او كهوټه دواړه برابر دي.

حل اللغة: ① الاستقراض- پور اخستل-② النقود-سكې-③ الغش-كهوټ-④ خلقى-مورزاده (پيدائشي)

تشريح:- دغه ډول كه دراهم مغشوشه (كهوټ ملاؤ شوي) يا دنانير مغشوشه د پور په طور اداكړې شو.نود وزن په اعتبار سره به پور اخستل جائز وي.د عدد(شمير) په ذريعه به جائز نه وي.لكه څنګه چې خالص دراهم او خالص دينار وتيلې شي.دا سره زر دي.او تركومه پورې چې ورته درهم وائي.دا به سپين زر وي.او سره زر او سپين زر د پور په وزن سره جائز ده.په عدد(شمير) سره جائز نه ده.ځكه چې د كهوټ ملاويدلو باوجود تركومه پورې چې دې



موزونات د قبيلې څخې دي.اود موزونات قرضه په وزن سره جائز وي.په عدد ياكيل وغيره سره جائز نه وي.په دې وجه دراهم او دنانير خالص وي.اوكه مغشوشه(كهوټ ملاؤ شوي) وي.په وزن سره ددې پور اخستل جائز دي.خو په عدد ياكيل سره ددې اخستل جائز نه دي.

؟ دراهم مغشوشه او دنانيرمغشوشه (يعنى كهوټ ملاؤ شوي دراهم او دنانير) د خالص دراهم او خالص دنانير په مرتبه كې كيدلو دليل دادې.چه نقود يعنى دراهم او دنانيرو سوانچه كول په عامه توګه (عام طور) باندې هغه وخته پورې نشي كيدلې.چه تركومه پورې دې كې كهوټ يعنى بل څه دهات ملاؤ نكړې شي.نو معلومه شوه.چه نقود څه ناڅه كهوټ نه خالى نه وي.بلكه څه ناڅه ګډون او ملاوټ به خامخا شوې وي.اوكله په سرو زرو او سپينو زروكې خلګ ى او مورزاده (پيدائشي) كهوټ هم وي.لكه څنګه چې په ردى(كهوټه) سرو او سپينو زروكې وي.نوكه كهوټ كم وي.او سره زر يا سپين زر غالب وي.نود كهوټ دا معمولى مقدار ردائت سره لاحق كولې شي.يعنى د كهوټ والا سره زر او سپين زر مورزاده (پيدائشي) ردى سره زر او سپين زرو سره لاحق كولې شي.او وراندې حديث تيرشوې دې.چه كره او كهوټه دواړه برابر دي.يعنى كه د كره مبادله ردى (كهوټه ) سره اوكړې شوه.نو په دې كې به تفاضل هم هغه شان حرام وي.لكه څنګه چې صرف كره د كره په مبادله كې تفاضل حرام وي.

## په سرو او سپينو زروكښې د كهوټه والي د غلبې مسئله

وَإِنْ كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهِمَا الْغِشَّ او كه په دواړو( سرو زرو او سپينوزرو باندې) كهوټ (ګډون) غالب وي فَلَيْسَا فِي حُكْمِ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيْرِ اعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ نودا به د غالب په اعتبار سره د دراهمو او دنانيرو په حكم كې نه وي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه دراهم يا دنانيرو كې كهوټ او ملاوټ زيات وي.او سپين زر يا سره زر مغلوب وي.نودا دراهم مغشوشه او دنانير مغشوشه، د دراهم او دنانيرو په حكم كې نه دي.ځكه چې د غالب اعتبار كيږي.نودا دراهم مغشوشه او دنانير مغشوشه به سپين زر او سره زر نشي ګڼرلې.بلكه داسې اسباب او سامان به ګڼرلې شمارلې شي.چه په هغې كې د سپينو زرو يا سرو زرو ګډون يا ملاوټ وي.

فَإِنِ اشْتَرَى بِهَا فِضَّةً خَالِصَةً نوكه د كهوټه دراهمو په عوض ئې خالص سپين زر واخستل. فَهُوَ عَلَى الْوُجُوْهِ الَّتِيْ نو په دې كې به هم هغه صورتونه راوڅى ذَكَرْنَاهَا فِيْ حِلْيَةِ السَّيْفِ كوم چې مونږ د تورې په زيور كې بيان كړې دي.

حل اللغة: ① الحلية-كالى-② السيف-توره-③ الصفر-پيتل-④ متفاضل-يوڅيز د بل نه زياتى

تشريح:- كه يوكس مغلوب سپين زر والا دراهم مغشوشه په عوض خالص سپين زر واخستل.نو په دې كې به هم هغه صورتونه راوڅى.كوم چې د تورې په زيوركې بيان شوي دي.يعنى كه په دراهم مغشوشه كې وي.نو په دې درې واړه صورتونوكې به بيع نه په سپينو زرو كې صحيح وي.اونه به په هغه دهات كې صحيح وي.كوم دهات چې په دراهم مغشوشه كې (ملاؤ) دى.اوكه خالص سپين زر د هغه سپينو زرو نه زيات وي.كوم چې په دراهم مغشوشه كې دي.نودا جائز دي.ځكه چې د دراهم مغشوشه سپين زر به خالص سپينو زرو كې د خپل مثل په عوض شي.اوكوم سپين زر چې زيات دي.هغه به د ملاوټ اود دراهم مغشوشه د دهات په عوض كې شي.

## كهوټ ملاؤ شوي دراهم خپل جنس سره تفاضلا د بيع حكم

وَإِنْ بِيْعَتْ بِجِنْسِهَا مُتَفَاضِلًا بيا كه كهوټ ملاؤ شوي دراهم ددې دجنس په عوض متفاضلاً خرڅ كړې شو جَازَ نو جائز دي صَرْفًا لِلْجِنْسِ إِلَى خِلَافِ الْجِنْسِ ( په دې طريقه چه) يوجنس به خلاف جنس اړخ ته ګرځولې شي فَهِيَ فِيْ حُكْمِ شَيْئَيْنِ فِضَّةٍ وَصُفْرٍ نودا دراهم مغشوشه( كهوټ ملاؤ شوي دراهم) د دوې (دوه) څيزونو يعنى سپينو زرو او پيتلو په حكم كې دي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه داسې دراهم مغشوشه(ملاوټى دراهم) چې په دې كې كهوټ غالب وي.كه دا ددې هم جنس دراهمو په عوض كې كمى زياتى سره خرڅ كړې شو.نوجائز دي.اود جواز وجه داده.چه داسې دراهم مغشوشه د دوې (دوه) څيزونوپه حكم كې دي.① سپين زر ② پيتل او كانسه ( يو ډول دهات) نو هريو به ددې د

جنس خلاف اړخ ته منسوب کولې شي.یعنی د احدالعوضین پیتل به،د دوهم عوض د سپینو زرو په مقابله کي اوسپین زر به د دوهم عوض د پیتلو په مقابله کي ګرځولې شي.اوهر کله چې داسي ده.نود دواړو عوضونو جنس مختلف کیدلو په وجه به تفاضل اوکمي زیاتي جائز وي.

وَلٰكِنَّهٗ صَرْفٌ حَتّٰى يُشْتَرَطَ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ خودا بیع صرف ده.تردې چې په مجلس کي قبضه کول شرط دی لِوُجُودِ الْفِضَّةِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ خکه چې دواړو اړخ ته سپین زر موجود دی فَإِذَا شُرِطَ الْقَبْضُ فِي الْفِضَّةِ نوهر کله چې په سپینو زرو کي قبضه شرط ده يُشْتَرَطُ فِي الصُّفْرِ نو په پیتلو کي به هم شرط وی لِأَنَّهٗ لَا يَتَمَيَّزُ عَنْهُ إِلَّا بِضَرَرٍ خکه چې د سپینو زرو نه د ضرر نه بغیر ددې جلا کیدل ممکن نه دی.

حل اللغة: ① العدالی-هغه دراهم چې کهوټ په کي غالب وی یو بادشاه طرف ته منسوب دی ② العطارفة-یوقسم سکه غطریف ابن عطاء کندی د خراسان امیر طرف ته منسوب دی.

تشریح:- دا عبارت د یو سوال خواب دې.سوال دادې.چه هر کله په سپینو زرو او پیتلوکي هر یو خلاف جنس اړخ ته منسوب کړې شو.نواوس به دا بیع،بیع صرف نه وی.اوهر کله چې دا بیع،بیع صرف نه ده.نو ددې عوضینو باندې به دجداکیدلو نه وړاندې قبضه کول هم شرط کیدل نه دی پکار.خکه چې د بیع صرف نه علاوه د هیڅ یو بیع په دواړه عوضونو باندې په مجلس کي قبضه کول شرط نه دی؟

خواب٭ددې خواب دادې.چه سپین زر چونکه دواړو اړخ ته موجود دی.په دې وجه دوی له عقدصرف کول پکار وو.خوچونکه د تفاضل په وجه عقدصرف ناجائز وی.په دې وجه ددې عقدصحیح کاوه په لحاظ په سپینو زرو او پیتلو کي هر یو خلاف جنس اړخ ته منسوب شوې دې.او کوم شئ چې ضرورة ثابت وی.هغه په اندازه د ضرورة ثابتیږی.ددې نه علاوه اړخ ته نه متعدی کیږی.نو تفاضل دجواز حده پورې عقدصرف نشی کیدلې.خو ددې نه علاوه قبضه وغیره شرط کولوکي به عقدصرف پاتې وی.او هر کله چې د عقدصرف کیدلو په وجه په سپینو زرو کي قبضه شرط ده.نو په پیتلوکي به هم شرط وی.خکه چې د ضرورة نه بغیر سپین زر د پیتلو نه جلا کول ممکن نه دی.

قَالَ علامه مرغینانی رحمه الله فرمایي وَمَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللّٰهُ لَمْ يُفْتُوا بِجَوَازِ ذٰلِكَ فِي الْعَدَالِي وَالْغَطَارِفَةِ چې زمونږ مشائخو په عدالی او غطارفه کي ددې د جواز فتوی نه ده ورکړې لِأَنَّهَا أَعَزُّ الْأَمْوَالِ فِي دِيَارِنَا خکه چې زمونږ په علاقوکښي عدالی او غطارفه په خوښ مالونوکي دی فَلَوْ أُبِيحَ التَّفَاضُلُ فِيهِ نو که په دې کي زیاتوالې مباح کړې شو يَنْفَتِحُ بَابُ الرِّبَا نود رباء دروازه به کلاؤ شي.

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د سمرقند او بخارا عالمانو په عدالی او غطارفه (یو ډول سکه ده)کي د تفاضل په جواز باندې فتوی نه ده ورکړې. سره ددې چې په دې کي کهوټ یعنی پیتل وغیره غالب او سپین زر مغلوب وی.خکه چې عدالی او غطارفه زمونږ په دې علاقوکي یعنی په سمرقند او بخارا وغیره کي قیمتی او خوښ مال شمارلې کیږی.نوکه په دې کي تفاضل جائز اوګرځولې شي.نود سود دروازه به کهلاؤ شي.او خلګ به رو رو په دې باندې قیاس کوی.او په سرو او سپینو زروکي به هم سود جائز کړی.نود سود ددې دروازې بندولو لپاره په عدالی او غطارفه کي هم د تفاضل د عدم جواز فتوی ورکړې شوې ده. سره ددې چې په دې دواړو سکوکي کهوټ غالب وی.

### د وزن او شمار په حیثیت سره د دراهمو د بیع وشراء حکم

ثُمَّ إِنْ كَانَتْ تَرُوجُ بِالْوَزْنِ بیا که (په داسې دراهم مغشوشه کي) په وزن سره د لین دین رواج وی فَالتَّبَايُعُ وَالِاسْتِقْرَاضُ فِيهَا بِالْوَزْنِ نو په دې کي اخستل خرڅول کول، او پور اخستل به په وزن سره وی وَإِنْ كَانَتْ تَرُوجُ بِالْعَدِّ اوکه ددې رواج په شمار سره وی فَبِالْعَدِّ نو په شمار سره به وی وَإِنْ كَانَتْ تَرُوجُ بِهِمَا او که په دواړو سره رواج وی فَبِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دې دواړوکي به هر یو سره جائز وی لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ هُوَ الْمُعْتَادُ فِيهِمَا خکه چې په دې دواړوکي د خلګو عادت معتبر دې إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيهِمَا نَصٌّ کله چې په دې کي هیڅ نص نه وی.

حل اللغة: ① تروج رواج وی ② التبایع-اخستل خرڅول-③ الاستقراض-د پور طلب کول ④ المعتاد-چه په رواج کي وی

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.هغه دراهم مغشوشه چې په هغې کي پیتل غالب وی.اوسپین زر مغلوب وی.او هغه دنانیر مغشوشه چې په هغې کي سره زر مغلوب وی.او پیتل وغیره بل څه دهات غالب وی.نو که ددې رواج په وزن سره وی.نو ددې اخستل خرڅول، او پور اخستل یا ورکول به د وزن په حساب سره کیږی.اوکه په خلګو کي ددې رواج د شمار په حساب سره وی.نو ددې اخستل خرڅول، اود پور لین دین به هم په شمار سره کیږی.او که ددې رواج په وزن اوشمیر دواړو سره وی.نو ددې اخستل خرڅول اود پور لین دین کي به د وزن او شمیر دواړو اعتبار کولې شي.یعنی په وزن سره به هم ددې لین دین کولې شي.او په شمار سره به هم کولې شي.دلیل دادې.چه داسې دراهم مغشوشه او دنانیرمغشوشه کي د خلګو عادت معتبر دې.او په دې کي د خلګو عادت خکه معتبر دې.چه دداسې دراهم مغشوشه او دنانیرمغشوشه په موزوني یا معدودی کیدلو باندې هیڅ نص نه دې وارد شوې.نو هرکله چې په دې کي د نص نه واردیدلو په وجه د خلګو عادت معتبر دې.نود وزن کاوه یاد شمیرکولو چې کوم عادت هم وی.هم د هغې اعتبار به کولې شي.

ثُمَّ هِيَ مَا دَامَتْ تَرُوجُ بیا ترکومه پورې چې داسې دراهم مغشوشه رائج وی تَكُونُ أَثْمَانًا نو(دا) به ثمن وی لَا تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ په متعین کاوه سره به نه متعین.په متعین کاوه سره به نه متعین وَإِذَا كَانَتْ لَا تَرُوجُ فَهِيَ سِلْعَةٌ او کله چې رائج نه وی.نو سامان به شمارلې شي تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ په متعین کاوه سره به متعین کیږی.

حل اللغة: ① دامت-ترڅو-② السلعة-سامان تجارت-③ یتقابل-قبلوی--

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه داسې دراهم مغشوشه او دنانیر مغشوشه چې ترکومه پورې رائج وی.یعنی د حکومت د اړخه چې ترکومه پورې د ثمن په طور ددې عام رواج وی.نو په شریعت کي به هم ددې شمار په ثمن کي کیږی.او ثمن چونکه په متعین کاوه سره نه متعین کیږی.خکه به داهم په متعین کاوه سره نه متعین کیږی.نوکه د عقد کاوه نه روسته دا دراهم مغشوشه یا دنانیر مغشوشه د بائع د سپارلو نه وړاندې مشتری سره هلاك شو.نو عقد به باطل نه وی.بلکه په مشتری به ددې مثل نور دراهم واجب وی.خکه چې د ثمن په هلاکیدلو سره عقد نه باطلیږی.اوکه د داسې دراهم مغشوشه د حکومت د اړخه عام رواج پاتې نشی.نو په داسې صورت کي به دا ثمن نه شمارلې کیږی.بلکه دا به سامان شمارلې شي.او سامان چونکه په متعین کاوه سره متعین کیږی.په دې وجه به دا هم په متعین کولو سره متعین کیږی.نوکه یوکس داسې دراهم مغشوشه یا دنانیر مغشوشه خرڅ کړل.او بیا د سپارلو نه وړاندې هلاك شو.نو عقد به باطل وی.لکه څنګه د سپارلو نه وړاندې د مبیع هلاکیدلو سره عقد باطلیږی.

وَإِذَا كَانَتْ يَتَقَبَّلُهَا الْبَعْضُ دُونَ الْبَعْضِ او چې داسې دراهم مغشوشه بعض خلګ قبلوی.او بعض يې نه قبلوی فَهِيَ كَالزُّيُوفِ نودا د کهوټه دراهمو پشان دی. لَا يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِعَيْنِهَا ددې ذات سره به عقد متعلق نه وی بَلْ بِجِنْسِهَا زُيُوفًا بلکه د کهوټه دراهمو د جنس سره به متعلق وی إِنْ كَانَ الْبَائِعُ يَعْلَمُ بِحَالِهَا په دې شرط چې بائع ددوی دحال نه خبر وی لِتَحَقُّقِ الرِّضَا مِنْهُ خکه چې دده د اړخه رضامندی متحقق شوې ده وَبِجِنْسِهَا مِنَ الْجِيَادِ او عقد به د کره دراهمو د جنس سره متعلق وی إِنْ كَانَ لَا يَعْلَمُ په دې شرط چې دې دا نه پیژنی لِعَدَمِ الرِّضَا مِنْهُ خکه چې دده د اړخه په کهوټه دراهمو باندې رضامندی نه ده موندلې شوې.

حل اللغة: ① یتقبل-قبلوی-② بعین-معین-③ الجیاد-ښه-④ التحقق-ثابتیدل

تشریح:- اوکه داسې دراهم مغشوشه او دنانیر مغشوشه بعض خلګ قبلوی.او بعض يې نه قبلوی.یعنی نه خو بیخی تهپ او بیکاره دی.(او نه عام مستعمل وی) نو په داسې صورت کي ددې حکم د زیوف یعنی د کهوټه

دراهمو او دنانیرو پشان دي.یعنی که بائع ته د دراهم مغشوشه او دنانیرمغشوشه داحال معلوم دي.چه بعضي خلګ دا قبلوي.او بعض خلګ ئې نه قبلوي.نو عقد به ددوی ذات سره نه متعلق کیږي.بلکه ددي جنس یعنی کهوټه دراهم یا کهوټه دنانیر به واجب وي.او بائع ته به کهوټه ملاویږي.ځکه چې د بائع د اړخه په کهوټه رضامندي ثابت شوې ده.اوکه بائع د دراهم مغشوشه او دنانیر مغشوشه د حال نه خبر نه وي.یعنی دا معلومه نه وي.چه بعض خلګ دا قبلوي.او بعض خلګ ئې نه قبلوي.نو په داسې صورت کي به عقد جید او کره دراهمو سره متعلق کیږي.او په مشتري به د کره دراهمو اداکول واجب وي.ځکه چې په دې صورت کي د بائع د اړخه په کهوټه دراهمو باندې رضامندي نه ده ښکاره شوې.

**د کهوټ ملاوشوي دراهمو په عوض سامان اخستلو نه روسته ددې د ختمیدلو مسئله**

وَإِذَا اشْتَرَى بِهَا سِلْعَةً اوکه دداسې دراهم مغشوشه په عوض ئې څه سامان واخستلو فَكَسَدَتْ بیا ددې رواج او چلن بندشو وَتَرَكَ النَّاسُ الْمُعَامَلَةَ بِهَا او خلګو ددې سره معامله کول پریخودله بَطَلَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود امام ابوحنیفه ﷫ په نیز به بیع باطل وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ عَلَيْهِ او امام ابویوسف ﷫ فرمایي قِيمَتُهَا يَوْمَ الْبَيْعِ چې په مشتري به د بیع د ورځې ددې دراهم مغشوشه قیمت واجب وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: قِيمَتُهَا آخِرَ مَا تَعَامَلَ النَّاسُ بِهَا [1] او امام محمد ﷫ فرمائي.چه په آخري ورځ چې خلګو ددې سره معامله کړې ده.د هغې ورځې ددې قیمت (به واجب وي)

حل اللغة: ① السلعة-سامان تجارت-② الكسادة-د رواج بندیدل-③ التسليم-سپارل-④ اوان-وختونه

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یو کس دداسې دراهم مغشوشه په عوض چې په هغې کي کهوټ (ګډون) غالب وي.څه سامان واخستلو.بیا دا دراهم ټهپ شو.یعنی ددې رواج او چلن بندشو.او خلګو په دې سره معامله کول پریخودله.نود حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز به دا بیع باطل وي.اوامام ابویوسف او امام محمد ﷫ فرمائي.چه بیع به باطل نه وي.بلکه په مشتري به ددې قیمت واجب وي.امام شافعي او امام احمد ﷫ هم ددې قائل دي.پاتې شوه داخبره چې د کومې ورځې قیمت به واجب وي.نو په دې اړه کي صاحبین ﷫ هم مختلف دي. حضرت امام ابویوسف ﷫ فرمائي.چه په کومه ورځ عقدبیع واقع شوې ده.په هغه ورځ چې ددې دراهم مغشوشه کوم قیمت وو.په مشتري به هم دا واجب وي.اوامام محمد ﷫ فرمائي.چه آخره ورځ کله چې خلګو په دې سره معامله کول پریخودله.د هغې ورځ چې ددې څه قیمت وي.هغه به واجب وي.

لَهُمَا د صاحبینو ﷫ دلیل دادې أَنَّ الْعَقْدَ قَدْ صَحَّ إِلَّا أَنَّهُ تَعَذَّرَ التَّسْلِيمُ بِالْكَسَادِ چې عقد صحیح شوې وو.خود چلن بندیدلو په وجه دا ثمن اداکول متعذر شو وَأَنَّهُ لَا يُوجِبُ الْفَسَادَ اود سپارلو متعذر کیدل فساد نه واجبوي كَمَا إِذَا اشْتَرَى بِالرُّطَبِ لکه مثلاً یوکس د تازه کجورو په عوض څه شئ واخستلو فَانْقَطَعَ أَوَانُهُ بیا (په بازارکي) داسې چوهاري منقطع شوې وَإِذَا بَقِيَ الْعَقْدُ اوهرکله چې عقد پاته شو وَجَبَتِ الْقِيمَةُ نو (په مشتري باندې) قیمت واجب شو لَكِنْ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ خود امام ابویوسف ﷫ په نیز به د بیع د وخت (قیمت واجب وي) وَقْتَ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ بِهِ ځکه چې د بیع په وجه د ثمن ضمان واجب شوې دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ يَوْمَ الِانْقِطَاعِ [2] ځکه چې د بیع په وجه د ثمن ضمان واجب شوې دي لِأَنَّهُ أَوَانُ الِانْتِقَالِ إِلَى الْقِيمَةِ ځکه چې قیمت اړخ ته د منتقل کیدلو وخت هم دا دي.

تشریح:- د صاحبینو ﷫ دلیل دادې.چه مبادله د مال بالمال موجود کیدلو په وجه د ثمن سپارل متعذر او ناممکن شو.اود ثمن سپارل چې متعذرشي.نو ددې په وجه بیع نه فاسدیږي.لکه مثلاً که یوکس د تازه کجورو په عوض څه شئ واخستلو.بیا د سپارلو نه وړاندې تازه کجورې بازارکي منقطع شوې.یعنی ددې ملاویدل بندشو. نودا بالاتفاق نه باطلیږي.بلکه په مشتري باندې ددې قیمت واجبیږي.اود علامه بدرالدین عیني ﷫ د قول مطابق به د

---

[1] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير(٢٧٧\٦) وردالمحتار(٢٧٠\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٨٦\٢)-

[2] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير(٢٧٧\٦) وردالمحتار(٢٧٠\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٨٦\٢)-



راروان کاله پورې د تازه کجورو انتظار هم نشي کولې.نوهم دغه ډول به دلته کي هم بیع باطل نه وي.او په بازار کي د ټهپ والي په وجه چې هرکله بیع باطل نشوه.بلکه بیع پاته ده.نو په مشتري به ددې دراهم مغشوشه قیمت واجب وي.خود امام ابویوسف ﷫ په نیز به د عقد بیع د ورځې قیمت واجب وي.ځکه چې دراهم مغشوشه ضمان دداسې بیع په وجه واجب شوې دي.که چرې بیع نه وه شوې.نو په مشتري به ددې دراهم مغشوشه ضمان هم نه واجبیدلې.نو هرکله چې په مشتري باندې ددې بیع په وجه ضمان واجب شوې دي.نو هم ددې بیع د ورځې قیمت به معتبر وي.یعنی د بیع په ورځ چې د دراهم مغشوشه کوم قیمت وو.په مشتري به هم هغه واجبیږي.لکه مثلاً د شئ مغصوبه هلاکیدلو نه روسته په غاصب باندې د غصب د ورځې قیمت واجبیږي.ځکه چې شئ مغصوب هم په دغه ورځ مضمون شوې دي.اود امام محمد ﷫ په نیز چې په کومه ورځ د دراهم مغشوشه چلن بازار نه بندشوې دي.ددغې ورځې قیمت به واجب وي.ځکه چې دراهم مغشوشه نه منتقل کیدل او قیمت اړخ ته راتګ په دغه ورځ واجب شوی دی.نو په کومه ورځ چې قیمت اړخ ته انتقال شوې دي. د قیمت په سلسله کي به د دغه ورځې قیمت معتبر وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې أَنَّ الثَّمَنَ يَهْلِكُ بِالْكَسَادِ چې په چلن بندیدلو سره ثمن هلاکیږي لِأَنَّ الثَّمَنِيَّةَ بِالِاصْطِلَاحِ ځکه چې ثمن کیدل خپل منځ کي په اتفاق سره وو وَمَا بَقِيَ فَيَبْقَى بَيْعًا بِلَا ثَمَنٍ حالانکه اوس دا اتفاق پاتې نشو.نو بیع بلاثمن پاته شوه فَيَبْطُلُ نو باطل به وي وَإِذَا بَطَلَ الْبَيْعُ او هرکله چې بیع باطل شوه يَجِبُ رَدُّ الْمَبِيعِ نو (په مشتري باندې) مبیع واپس کول واجب دي إِنْ كَانَ قَائِمًا که مبیع موجود وي وَقِيمَتُهُ إِنْ كَانَ هَالِكًا او ددې قیمت واجب دي.که مبیع هلاک شوی وي كَمَا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ لکه څنګه چې په بیع فاسد کي کیږي.

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې.چه داسې دراهم مغشوشه چې په هغې کي کهوټ غالب وي. د دې ثمن کیدل د خلګو په اتفاق کاوه سره وو.خو چې کله خلګو په دې سره معامله کول پریخودل.نود خلګو اصطلاح او اتفاق باطل شو.اوهرکله چې د خلګو اتفاقا پاته نشو.نو عقد بیع بلا ثمن پاتې شو.او بلاثمن عقد باطل وي.ځکه به په دې صورت کي هم عقد باطل وي.او هرکله چې عقد باطل شو.نو په مشتري به مبیع واپس کول واجب وي.په دې شرط چې مبیع دده سره موجود وي.اوکه مبیع هلاک شوې وي.نو ددې قیمت به واجب وي.په دې شرط چې مبیع د ذوات القیم څخه وي.اوکه مبیع د ذوات الامثال څخه وي.نو ددې مثل واپس کول به واجب وي.لکه څنګه چې په بیع فاسدکي هم دا حکم دې.یعنی په بیع فاسد کي که مشتري په مبیع باندې قبضه اوکړله.نوکه مبیع موجود وي.نوهغه به واپس کوي.اوکه مبیع موجود نه وي.نو ددې مثل به واپس کوي.که د ذوات الامثال څخه وي.اوکه د ذوات القیم څخه وي.نو ددې قیمت به واپس کوي.

فوائد: کساد: (ټهپ کیدل) یعنی چلن او رواج بندیدل.د امام محمد ﷫ په نیز به کساد هغه وخت متحقق وي.چه کله په ټولو ښارونوکي چلن بند شي.اود شیخینو ﷫ په نیز د کساد متحقق کیدلو لپاره دومره کافي ده.چه په کوم ښار کي عقد واقع شوې دي.هم په دې ښارکي چلن بند شي.(عیني)

**د فلوس (پیسو) په عوض د بیع حکم**

قَالَ وَيَجُوزُ الْبَيْعُ بِالْفُلُوسِ اود پیسو په عوض بیع جائز ده. لِأَنَّهَا مَالٌ مَعْلُومٌ ځکه چې دا معلوم مال دې فَإِنْ كَانَتْ نَافِقَةً نوکه دا پیسې رائج وي جَازَ الْبَيْعُ بِهَا نو ددې په عوض بیع جائز ده وَإِنْ لَمْ تَتَعَيَّنْ اګرچه دا متعین نکړی لِأَنَّهَا أَثْمَانٌ بِالِاصْطِلَاحِ ځکه چې دا پخپل منځ کي په اتفاق سره ثمن شوی دی.

حل اللغة: ① الفلوس-جمع د فلس،پیسه-② النافقة-رائج

تشریح:- مسئله داده.چه د فلوس په عوض بیع جائز ده.ځکه چې فلوس داسې مال دي.چه د مقدار او وصف په اعتبار سره معلومیږي.او کوم مال چې معلوم المقدار او معلوم الوصف وي.د هغې په عوض بیع جائز وي.ځکه به د فلوس په عوض بیع جائز وي.اوس به دا فلوس د عقدپه وخت یا خو رائج وي.یا به ددې رواج ټهپ وي.که دا

رائج وي.نود دراهمو او دنانيرو پشان بيع کي ددې متعين کول هم ضروري نه دي.بلکه دا په متعين کاوه سره هم نه متعين کيږي.مثلاً د لس پيسو نې څه شئ واخستلو.نو ددې شئ متعين کول واجب دي.خو پيسې به نه متعين کيږي.بلکه په پيسو کي به لس پيسې ورکوي.ځکه چې د خلګو د اتفاق په وجه فلوس( پيسې ) ثمن جوړ شوي دي.او ثمن په متعين کاوه سره نه متعين کيږي.ځکه به دا فلوس هم نه متعين کيږي.

**وَإِنْ كَانَتْ كَاسِدَةً** اوکه ددې پيسو چلن بند وي **لَمْ يَجُزِ الْبَيْعُ بِهَا** نو ددې په عوض بيع جائز نه ده **حَتَّى يُعَيِّنَهَا** ترديچې دا متعين کړي **لِأَنَّهَا سِلَعٌ** ځکه چې دا هم يو سامان دي **فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْيِينِهَا** نو ددې معين کول ضروري دي.

**تشريح:-** اوکه دا فلوس رائج نه وي.بلکه ددې چلن بند شوې وي.نو په بيع کي ددې متعين کول ضروري دي.په دې صورت کي به ددې بيع هغه وخت جائز وي.چه کله دا متعين شوي وي.ځکه چې اوس دا فلوس سامان جوړ شوي دي.اود سامان په بيع کي سامان متعين کول ضروري وي.په دې وجه به ددې متعين کول هم ضروري وي.

### د رائج فلوس په عوض بيع نه روسته ددې د ټهپ کيدلو مسئله

**وَإِذَا بَاعَ بِالْفُلُوسِ النَّافِقَةِ** اوکه د رائج الوقت فلوس ( پيسو) په عوض ئې څه شئ خرڅ کړو **ثُمَّ كَسَدَتْ** بيا ددې چلن بند شو **بَطَلَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** نود امام ابوحنيفه ﷫ په نيز به بيع باطل وي **خِلَافًا لَهُمَا** نود امام ابوحنيفه ﷫ په نيز به بيع باطل وي **وَهُوَ نَظِيرُ الِاخْتِلَافِ الَّذِي بَيَّنَّاهُ** اودا د هغه اختلاف مثال دې.کوم چې موږ بيان کړې دي.

**تشريح:-** مسئله داده.که يو کس څه شئ د رائج الوقت فلوس په عوض خرڅ کړلو.بيا په دې باندې د قبضه کاوه نه روسته ددې چلن بند شو.نودحضرت امام اعظم ﷫ په نيز به دا بيع باطل وي.اود صاحبينو ﷭ په نيز به باطل نه وي.بلکه په مشتري د ټهپ شوي فلوس قيمت واجب وي.د امام ابويوسف ﷫ په نيز به د عقدبيع د ورځې قيمت واجب وي.اود امام محمد ﷫ په نيز به د ټهپ کيدلو دورځې قيمت واجب وي.ددې اختلاف تفصيل سره د دلائلو د تيره شوې مسئلې **﴿إذا اشترى بها سلعة فكسدت﴾** لاندې تيرشوې دې.هلته کي ئې اوګورئ.

### د رائج الوقت فلوس پور اخستلو نه روسته ددې کوټه کيدلو مسئله

**وَلَوِ اسْتَقْرَضَ فُلُوسًا نَافِقَةً** اوکه رائج الوقت فلوس ئې پور واخستل **فَكَسَدَتْ** بيا ددې چلن بند شو **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** نود امام ابوحنيفه ﷫ په نيز په قرضدار به ددې مثل واپس کول واجب وي **يَجِبُ عَلَيْهِ مِثْلُهَا** **لِأَنَّهُ إِعَارَةٌ** ځکه چې قرضه اخستل يو عاريه ده **وَمُوجَبُهُ رَدُّ الْعَيْنِ مَعْنًى** او ددې حکم معنوي طور باندې عين شئ واپس کول دي.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه يو سړي د رائج الوقت فلوس( پيسو) قرضه واخستله.بيا ددې رواج او چلن بند شو.نود حضرت امام ابوحنيفه ﷫ په نيز پور دار باندې ددې مثل واپس کول واجب دي.يعنې څومره قدرې فلوس ئې چې اخستې وو.هم هغه اومره به واپس کوي.دليل دادې.چه د مثلي شئ پور اخستلو ته اعاره وائي.لکه څنګه چې مثلي شئ عارية ور کاوه ته پور وائي.اود مثلي شئ پور اخستلو حکم دادې.چه ،،من حيث المعنى،، عين شئ واپس کړې شي.نه من حيث الحقيقت،اوکه په عارية کيدلو باندې نظر اوکړې شي.نو حقيقة عين شئ واپس کول پکار دي.ځکه چې په عاريه کي هغه شئ واپس کولې شي.کوم ئې چې اخستې وي.خوچونکه دا پور دې.او په پور کي عين شئ تلف کولې شي.او نفع حاصلولې شي.په دې وجه حقيقتاً عين شئ واپس کول ناممکن شو.او هرکله چې حقيقة عين شئ واپس کول ناممکن شو.نو معنى د عين شئ واپس کول واجب شو.او معنى د عين شئ واپسې د مثل په ذريعه کيداې شي.په دې وجه به قرضدار باندې د فلوس مثل واجبيږي.خودا خيال ساتل پکار دي.چه دې مثل ته به حقيقةً د عين شئ مرتبه ورکولې شي.ځکه که مثل شئ ته حقيقةً د عين شئ مرتبه ورنکړې شوه.نو،، مبادلة الشئ بجلسه نسيئة،، به لازميږي.حالانکه دا ناجائز دي.په دې وجه به مثل شئ ته د عين شئ درجه ورکولې شي.



**وَالثَّمَنِيَّةُ فَضْلٌ فِيهِ** او ثمن کيدل په قرضه کي يو زياتي امر دې **إِذِ الدَّيْنُ لَا يَخْتَصُّ بِهِ** ځکه چې پور ثمن سره مختص نه دې.

**تشريح:-** دا عبارت د يو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه دلته کي د فلوس مثل د عين شئ په معنى کي څنګه کيداې شي.ځکه چې هرکله قرضدار فلوس اخستې وو.نودا د رائج کيدو په وجه ثمن وو.خوچه کله د رواج بنديدلو نه روسته دا واپس کوي.نو دغه وخت دا ثمن نه دي.حاصل داچه ټهپ شوي فلوس د رائج فلوسو معنىً مثل نه دي.او هرکله چې ټهپ شوي فلوس د رائج فلوسو معنىً مثل نه دي.نود قرضداري په ټهپ شوي فلوس ادا کاوه سره به د هغه فلوس مثل نه اداکيږي.کوم ئې چې پور اخستې وو؟
ځواب"ددې ځواب دادې.چه ثمن کيدل په پور کي يو زياتي امر دې.ځکه چې پور ثمن سره مخصوص نه دي.نو هرکله چې پور ثمن سره خاص نه دې.نودا به ونيلې شي.چه د فلوس پور اخستل ددې د ذوات الامثال کيدلو په اعتبار سره دي.اود فلوس چلن بنديدل، دا د ذوات الامثال کيدلو نه نه خارجوي.حاصل داشو.چه قرضدار يو مثلي شئ پور واخستلو.او ددې مثل ئې واپس کړلو.يعنى څومره قدرې فلوس ئې چې اخستې وو.هم هغه اومره ئې واپس کړې دي.اوپه داسې کاوه سره چونکه قرضه ادا کيږي.په دې وجه د امام اعظم ﷫ په نيز د فلوس مثل ادا کاوه سره قرضه اداکيږي.

**وَعِنْدَهُمَا تَجِبُ قِيمَتُهَا** (١) اود صاحبينو ﷭ په نيز په قرضدار به ددې قيمت واجب وي **لِأَنَّهُ لَمَّا بَطَلَ وَصْفُ الثَّمَنِيَّةِ** ځکه کله چې د ثمن کيدلو وصف باطل شو **تَعَذَّرَ رَدُّهَا كَمَا قَبَضَ** نوبه څنګه فلوس ئې چې قبضه کړې وه.هم هغه شان واپس کول متعذر شوي دي **فَيَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهَا** نوددې د قيمت واپس کول به واجب وي **كَمَا إِذَا اسْتَقْرَضَ مِثْلِيًّا** لکه مثلاً يو کس يو مثلي شئ پور واخستلو **فَانْقَطَعَ** بيا هغه ( په بازارکي ) منقطع شو.

**تشريح:-** د صاحبينو ﷭ مذهب دادې.چه په قرضدار به د هغه فلوس قيمت واجب وي.کوم چې د رواج نه روسته ټهپ شوي دي.او دليل دادې.چه هرکله د فلوس ثمن کيدلو وصف باطل شو.نود داسې فلوس واپس کول متعذر شو.په څنګه فلوس ئې چې قبضه کړې وه.ځکه چې کوم فلوس د ثمن کيدلو نه خالي دي.دا دهغه فلوس په معنى کي نشي کيدلې.په کوم کي چې ثمنيت موجود دې.نو هرکله چې فلوس نافقه ( رائج فلوس) قرضدار اخستې وو.او ددې واپس کول متعذر شو.نو ددې قيمت واپس کول به واجب وي.لکه مثلاً يوکس غنم وغيره مثلي شئ د پور په طور اخستې وي.او بيا دا په بازارکي منقطع شو.نو ددې قيمت واپس کول واجبيږي.هم دغه ډول په ذکرشوې مسئله کي به هم قيمت واپس کول واجب وي.

**لَكِنْ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقَبْضِ** خود امام ابويوسف ﷫ په نيز د قبضې د ورځې قيمت **وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ يَوْمَ الْكَسَادِ** اود امام محمد ﷫ په نيز د چلن بنديدلو د ورځې قيمت ( به واجب وي **وَعَلَى مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ** لکه څنګه چې وړاندې تيرشوي دي **وَأَصْلُ الِاخْتِلَافِ** او اصل اختلاف دداسې سړي په مسئله کي دې **فِيمَنْ غَصَبَ مِثْلِيًّا فَانْقَطَعَ** چاچه يو مثلي شئ غصب کړو.بيا هغه منقطع شو.

**تشريح:-** دومره خبره ضرور ده.چه د قاضي ابويوسف ﷫ په نيز به د هغه ورځې قيمت ادا کول واجب وي.په کومه ورځ چې قرضداري په دې باندې قبضه کړې وه.اود امام محمد ﷫ په نيز به د هغه ورځې قيمت واجب وي.په کومه ورځې چې ددې چلن بندشوې دې.هم دا اختلاف وړاندې تيرشوې دې.د صاحبينو ﷭ په مينځ کي د اختلاف اصل

---

(١) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين ﷭ كذا فى فتح القدير(٢٨٠\٦) والكفاية (٢٨٠\٦) وردالمحتار(٢٧٠\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٨٧\١٢)-

په دې مسئله کې دې. چه يوکس مثلي شئ غصب کړو. بيا هغه منقطع شو. نود امام ابويوسف په نيز به د غصب د ورځې قيمت واجب وي. اود امام محمد په نيز به د انقطاع د ورځې قيمت واجب وي.

وقول محمد رحمه الله أنظر للجانبين اود امام محمد په قول کې د طرفينو (جانبينو) رعايت (او لحاظ) دې وقول أبي يوسف أيسر اود امام ابويوسف په قول کې آسانتيا زياته ده.

تشريح:- علامه مرغيناني فرماني. چه د امام محمد په قول کې د قرضه ورکونکي او قرضه اخستونکي دواړو رعايت دی. د قرضه ورکونکي رعايت د امام صاحب د قول په مقابله کې دې. ځکه چې د امام صاحب په نيز ددې تهپ شوي فلوس مثل واجبيږي. اوښکاره ده. چه په دې کې د قرضه ورکونکي هيڅ رعايت نشته. ځکه چې دې غريب خو فلوس نافقه (رائج فلوس) ورکړي وو. او فلوس کاسده (تهپ فلوس) اخلي. اود امام ابويوسف په مقابله کې د قرضه اخستونکي رعايت دې. په دې طريقه چې د امام ابويوسف په نيز په قرضه اخستونکي باندې د قبضې د ورځې قيمت واجبيږي. او په کومه ورځ چې پور اخستونکي په فلوس باندې قبضه کړې وه. په هغه ورځ چونکه دا رائج او چالو وې. ځکه به دغه ورځ ددې قيمت يقيناً زيات وي. او په دې کې د پور اخستونکي هيڅ رعايت نشته. نو ښکاره شوه. چه د امام محمد په قول کې د مقروض او مست پور د دواړو د رعايت لحاظ ساتلې شوې دې. اود امام ابويوسف په قول کې اساني زياته ده. ځکه چې په کومه ورځ مست پور په قرضه باندې قبضه کړې وه. د هغه ورځ قيمت مقرض، مست پور او ټولو خلګو ته معلوم دې. نو په دې باندې عمل کول آسان دی. اود تهپ کيدلو د ورځې قيمت به په خلګو مشتبه وي. او په دې کې به سخت اختلاف وي. په دې وجه د تهپ کيدلو د ورځې قيمت معلومول، او په دې باندې د شريعت حکم لګول آسان نه دی.

**د نصف درهم فلوسو په عوض اخستلو حکم**

قال فرمايي ومن اشترى شيئا بنصف درهم فلوس اوکه يوکس يوڅيز د نصف درهم فلوس (پيسو) په عوض واخستلو جاز نو جائز دی وعليه ما يباع بنصف درهم من الفلوس او په مشتري به دومره اندازه فلوس واجب وي. چې د نصف درهم په عوض خرڅولې شي وكذا إذا قال بدانق فلوس اوهم دغه ډول که وې وئيل. چه د يو دانق فلوس په عوض أو بقيراط فلوس يا د يو قيراط فلوس په عوض مې واخستلو جاز نو جائز دی. کوم

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. يوکس اووئيل. چه ما دا شئ د نصف درهم فلوس په عوض واخستلو. چه ددې قيمت نصف درهم سپين زر وي. نودا بيع جائز ده. او په مشتري باندې به دومره فلوس اداکول واجب وي. چه د نصف درهم په عوض خرڅيږي. اوکه دا ئې اووئيل. چه دا شئ ما د يو دانق فلوس ياد يو قيراط فلوس په عوض واخستلو. يعنی د دومره فلوس په عوض مې واخستلو. چه ددې قيمت يو دانق سپين زر يا يو قيراط سپين زر وي. نودا هم جائز دی. او په مشتري باندې دومره فلوس ادا کول واجب دی. چه د يو دانق سپين زر يا د يوقيراط سپينو زرو په عوض خرڅيږي.

وقال زفر او امام زفر فرمايي لايجوز في جميع ذلك چې په دې ټولو صورتونو کې جائز نه دی لأنه اشترى بالفلوس ځکه چې ده د فلوس په عوض اخستې دې. وانها تقدر بالعدد اود فلوس اندازه عدد سره کولای شي لا بالدانق والدرهم په دانق او په نصف درهم سره نه کيږي فلا بد من بيان عددها نو ددې د عدد بيانول ضروري دی.

تشريح:- په زيربحث مسئله کې امام زفر فرماني. چه په دې ټولو صورتونو کې بيع ناجائز ده.

د امام زفر دليل دادې. چه مشتري د فلوس په عوض اخستل کړې دی. او فلوس د معدوداتو څنې دی. او نصف درهم، دانق او قيراط د موزوناتو څنې دی. يعنی د فلوس اندازه په شمير سره کيږي. په دانق، قيراط او نصف درهم سره نه کيږي. نود نصف درهم، دانق او قيراط په ذکر کاوه سره عدد ذکر نشو. او هرکله چې د فلوس عدد ذکر او بيان نشو. نو په دې بيع کې د فلوس مقدار يعنی ثمن مجهول شو. اود ثمن مجهول کيدلو په صورت کې بيع ناجائز وي. په دې وجه به په دې ټولوصورتونوکې بيع ناجائز وي.



ونحن نقول او موږ وايو ما يباع بالدانق ونصف الدرهم من الفلوس هغه فلوس کوم چې په دانق او نصف درهم سره خرڅولې شي معلوم عند الناس د خلګو په نيز معلوم دی والكلام فيه فأغنى عن بيان العدد او کلام هم په دې کې دی. نود عدد بيانولو نه بې نيازه شوې دې.

تشريح:- دامام زفر د دليل نه زموږ دا ځواب دادې. چه کوم فلوس د نصف درهم، دانق اود قيراط په عوض خرڅيږي. هغه ټولو ته معلوم دی. او موږ مسئله هم په دې صورت کې فرض کړې ده. چه خلګو ته دا معلومه وي. چه د نصف درهم سپينو زرو په عوض څومره قدرې فلوس خرڅيږي. اود يو دانق عوض څومره قدرې، اود يو قيراط عوض څومره قدرې فلوس خرڅيږي. او مسئله هم په دې صورت کې فرض شوې ده. نود فلوس مقدار او تعداد بيانولو هيڅ اړتيا نشته. نوهرکله چې ددې علم ټولو ته دې. نود ثمن مجهول کيدل نه لازميږي. او هرکله چې ثمن مجهول پاتې نشو. نو بيع به هم ناجائز نه وي. بلکه جائز به وي.

ولو قال واګر ګفت بدرهم فلوس او که وې وئيل. د يو درهم فلوس په عوض، يا د دوې (دوه) درهمو فلوسو په عوض أو بدرهمين فلوس كذا عند أبي يوسف رحمه الله (1) نود امام ابويوسف په نيز هم داسې ده لأن ما يباع بالدرهم من الفلوس معلوم ځکه هغه فلوس کوم چې د درهم په عوض خرڅولې شي معلوم دی وهو المراد لا وزن الدرهم من الفلوس اوهم دا مراد دې. په فلوس کې د درهم وزن مراد نه دې.

تشريح:- اوکه دا ئې اووئيل. چه مادا شئ د يو درهم فلوس يا د دوې (دوه) درهم فلوس په عوض واخستلو. يعنی د دومره فلوس په عوض مې واخستلو. چه ددې قيمت يو درهم يا دوې (دوه) درهم سپينو زر وي. نود امام ابويوسف په نيز جائز دې.

د امام ابويوسف دليل دادې. چه کوم فلوس د يو درهم په عوض خرڅيږي. خلګو ته ددې مقدار او عدد معلوم دې. او دلته کې هم دا مراد دی. چه د دومره فلوس په عوض مې واخستلو. چه ددې قيمت يودرهم سپين زر وي. دا مراد نه دی. چه د دومره فلوس په عوض مې واخستل. چه ددې وزن د يو درهم د وزن برابر وي. هرکله چې دا معلومه ده. چه څومره قدرې فلوس د يو درهم سپينو زرو په عوض خرڅيږي. نو په دې صورت کې هم د عقدبيع ثمن مجهول پاتې نشو. اوهرکله چې ثمن مجهول نه دې. نو بيع به هم جائز اوصحيح وي.

وعن محمد رحمه الله اود امام محمد نه نقل دی أنه لا يجوز بالدرهم چې په درهم کې جائز نه دې ويجوز فيما دون الدرهم اود درهم نه په کم کې جائز دې لأن في العادة المبايعة بالفلوس فيما دون الدرهم ځکه چې د درهم نه په کم کې د فلوس په عوض د اخستلو خرڅولو عادت دې فصار معلوما بحكم العادة نود عادت په وجه (د نصف درهم پيسې) معلومې شوې ولا كذلك الدرهم او درهم داسې نه دې.

تشريح:- په زيربحث مسئله کې امام محمد فرمايي چې دا بيع په يو درهم کې جائز ده. خود يو درهم نه په کم کې جائز نه ده.

دليل دادې. چه ديو درهم نه په کم کې په فلوس سره په خلګو کې عادت دې. خو په يو درهم کې په فلوس سره د اخستلو په خلګو کې عادت نه دې. نوچونکه د عادت په وجه د نصف درهم پيسې معلوميږي. خود درهم فلوس او پيسې نه معلوميږي. ځکه به د نصف درهم فلوس په عوض اخستل به جائز وي. خود يو درهم فلوس په عوض اخستل به جائز نه وي.

(1) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في العناية (٢٨٠/٦) والدرالمختار (٢٧٠/١٤) والبحر (٣٠٣/٦) نقلاً عن القول الراجح (٨٨/٢)-

قَالُوا نود عادت په وجه ( د نصف درهم پيسې) معلومې شوې وَقَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَصَحُّ چې د امام ابويوسف ﷫ قول اصح دې لَا سِيَّمَا فِي دِيَارِنَا خصوصاً زمونږ په ملك كې.

تشريح:- مشائخ فرمائي، چه د امام ابويوسف ﷫ قول زيات صحيح دې. خصوصاً د ماوراء النهر په ښاريو كې، چې د هغه ځائې خلګ د درهم په عوض هم فلوس اخلي. نود يو درهم سپينو زرو په عوض چې څومره قدرې فلوس خرخيږي. د دغه ځائې خلګو ته چونكه ددې مقدار معلوم دې. په دې وجه د يو درهم فلوس يا د دوې (دوه) درهمو فلوسو په عوض اخستل هم جائز دى.

**د يو درهم د نيم په بدله كښې فلوس. اود نيم په بدله كښې د يوحبه ( رتئ) كم نصف درهم اخستلو حكم**

قَالَ فرمايي وَمَنْ أَعْطَى صَيْرَفِيًّا دِرْهَمًا اوكه يوكس صراف ته يو درهم وركړو وَقَالَ او وې وئيل أَعْطِنِي بِنِصْفِهِ فُلُوسًا وَبِنِصْفِهِ نِصْفًا إِلَّا حَبَّةً چې ماته ددې دنصف په عوض فلوس اود نصف په عوض يو حبه ( رتئ) كم نصف درهم راكړه جَازَ الْبَيْعُ فِي الْفُلُوسِ وَبَطَلَ فِيمَا بَقِيَ عِنْدَهُمَا نود صاحبينو ﷮ په نيز فلوس كې دا بيع جائز ده. او په مابقي كې باطل ده. لِأَنَّ بَيْعَ نِصْفِ دِرْهَمٍ بِالْفُلُوسِ جَائِزٌ خكه چې د فلوس په عوض د نصف درهم بيع جائز ده وَبَيْعُ النِّصْفِ بِنِصْفٍ إِلَّا حَبَّةً رِبًا اود نصف درهم بيع د حبه (رتئ) كم نصف درهم په عوض رباء ده فَلَا يَجُوزُ په دې وجه ناجائز ده.

تشريح:- په دې عبارت كې دا مسئله ذكر ده چې يو سړي صراف ته يو روپئ وركړله. او وې وئيل، چه ته ماته ددې د نصف په عوض فلوس راكړه. اود نصف په عوض يو حبه ( رتئ) كم نصف درهم راكړه. نود صاحبينو ﷮ په نيز فلوس كې دا بيع جائز ده. او په مابقي كې باطل ده. خكه چې ده د نصف درهم مقابله فلوس سره كړې ده. اود نصف درهم مقابله ئې حبه ( رتئ) كم نصف درهم سره كړې ده. نو فلوس سره د نصف درهم په مقابله كې چونكه دجواز هيڅ مانع نشته. په دې وجه د فلوس په عوض د نصف درهم بيع جائز ده. اود حبه كم نصف درهم مقابله نصف درهم سره كاوه كې چونكه رباء ده. خكه به ددې بيع باطل وى.

وَعَلَى قِيَاسِ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ بَطَلَ فِي الْكُلِّ[1] اود امام ابوحنيفه ﷫ د قول مطابق په ټولو كې بيع باطل ده لِأَنَّ الصَّفْقَةَ مُتَّحِدَةٌ وَالْفَسَادُ قَوِيٌّ فَيَشِيعُ خكه چې صفقه متحد او فساد قوى دې. خكه به فساد خوريږى وَقَدْ مَرَّ نَظِيرُهُ او ددې مثال تيرشوې دې.

تشريح:- د امام ابوحنيفه ﷫ د مذهب تقاضا داده. چه په كُل كې بيع باطل وى. خكه چې د پوره درهم صفقه يوه ده. او په نصف درهم كې رباء لازميدلو په وجه فساد قوى دې. او فساد خكه قوى دې. چه د رباء په وجه كوم فساد پيدا شوې دې. هغه مجمع عليه او متفق عليه دې. او فساد قوى چونكه په پوره عقد كې خور دې. خكه به پوره عقد فاسد وى. ددې مثال تيرشوې دې. مثلاً هركله چې څوك غلام او آزاد خرڅ كړى. او په دې كې د هريو ثمن بيان نكړې شو. نود آزاد په بيع كې فساد چونكه قوى دې. په دې وجه به دا فساد بالاجماع په پوره عقد كې خوريږى. نوهم دغه دول په متن كې په ذكرشوې مسئله كې هم په پوره عقد كې فساد پرخپاره شوې (خور شوې) دې. او په كُل كې به عقد باطل وى.

وَلَوْ كَرَّرَ لَفْظَ الْإِعْطَاءِ اوكه لفظ د اعطاء ئې مكرر كړې وى كَانَ جَوَابُهُ كَجَوَابِهِمَا نود امام صاحب ﷫ حكم به د صاحبينو ﷮ د حكم پشان وى هُوَ الصَّحِيحُ دغه صحيح ده لِأَنَّهُمَا بَيْعَانِ خكه چې دا دوې (دوه) عقده دى.

حل اللغة: ① الاعطاء-وركول-② جواب-حكم-③ وراء-علاوه-④ حبة-دانه

تشريح:- په دې عبارت كې هم دوهم صورت ذكر كوى. دا صورت هم د اولنى صورت پشان دې البته په دې كې دومره توپير دې چې لفظ د اعطاء ئې مكرر كړلو. نوپه دې صورت كې د صاحبينو اود امام صاحب ﷫ درې وارو

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في فتح القدير (٢٨١/٦) والعناية (٢٨١/٦) نقلاً عن القول الراجح (٨٩١/٢)-



په نيز د فلوس بيع جائز ده. اود مابقي به باطل وى. خكه چې د لفظ اعطاء مكرر ذكر كاوه په وجه دا دوې (دوه) عقده شوى دى. اود يو عقدبيع فاسديدلو په وجه د درهم عقدبيع فاسديدل نه لازميږى. نود نصف درهم بيع د حبه (رتئ) كم نصف درهم په عوض باطليدلو په وجه به د فلوس بيع باطل نه وى.

وَلَوْ قَالَ اوكه اووئيلې شو أَعْطِنِي نِصْفَ دِرْهَمٍ فُلُوسًا وَنِصْفًا إِلَّا حَبَّةً چې ماته نصف درهم فلوس او حبه ( رتئ) كم نصف درهم راكړه جَازَ چې ماته نصف درهم فلوس او حبه ( رتئ) كم نصف درهم راكړه لِأَنَّهُ قَابَلَ الدِّرْهَمَ بِمَا يُبَاعُ مِنَ الْفُلُوسِ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ خكه چې ده د درهم مقابله هغه فلوس سره اوكړله. كوم چې د نصف درهم په عوض خرخيږى وَبِنِصْفِ دِرْهَمٍ إِلَّا حَبَّةً اود حبه كم نصف درهم سره ئې اوكړله فَيَكُونُ نِصْفُ دِرْهَمٍ إِلَّا حَبَّةً بِمِثْلِهِ نو حبه كم نصف درهم به ددې د مثل عوض وى وَمَا وَرَاءَهُ بِإِزَاءِ الْفُلُوسِ او ددې نه علاوه به د فلوس په مقابله كې وى.

تشريح:- په دې عبارت كې دريم صورت بيانوى چې يوكس صراف ته يو درهم وركړو. او وې وئيل چه ته ماته ددې درهم په عوض دنصف درهم فلوس او حبه كم نصف درهم راكړه. نودا پوره بيع جائز ده. يعنى فلوس او حبه ( رتئ) كم نصف، د دواړو نصف درهم بيع جائز ده. خكه چې په دې صورت كې مشترى د يو درهم په مقابله كې د نصف درهم قيمت فلوس، او حبه كم نصف درهم ذكر كړى دى. نود حبه كم نصف درهم په عوض به حبه كم نصف درهم شى. او نصف درهم او يوحبه به د برابر درهم په عوض فلوس شى. اود درهم او فلوس په مينځ كې چونكه اختلاف جنس دې. خكه به كمي زياتي هم جائز وى.

قَالَ ﷺ علامه مرغيناني ﷫ فرمايي وَفِي أَكْثَرِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ ذَكَرَ الْمَسْأَلَةَ الثَّانِيَةَ وَاللهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ چې د قدورى ﷫ په اكثرو نسخوكې دويمه مسئله ذكر ده.

تشريح:- صاحب دهدايه ﷫ فرمائي. چه د قدورى په اكثرو نسخو كې دوهم صورت ذكر دې. اود دوهم صورت نه مراد هغه صورت دې. كوم ته چې موږ د دريم صورت نوم وركړو. كوم چې په دې قول سره تير شو «وَلَوْ كَرَّرَ لَفْظَ الْإِعْطَاءِ» خكه چې علامه مرغيناني ﷫ هغه مسئله مستقله مسئله نه ده منلې. كومې ته چې موږ د دويمې مسئلې عنوان وركړې دې بلكه علامه مرغيناني ﷫ هغه د ړومبۍ مسئلې په ضمن كې د «وَلَوْ كَرَّرَ لَفْظَ الْإِعْطَاءِ» الفاظو سره بيان كړې ده.

# كتاب الكفالة

ژباړه ( دا) كتاب د كفالت د احكامو په بيان كې ) دې.

تشريح:- ① د كفالة اړتيا په عامه توګه (عام طور) د بيوع نه روسته پيښيږى خكه چې كله بائع د مشترى نه مطمئن نشى. نود داسې كس اړتيا راپيښيږى. چې د مشترى د اړخه د ثمن كفيل ( واكدار) شى. او كله مشترى د بائع نه نه مطمئن كيږى. نود داسې كس اړتيا راپيښيږى. چه د بائع د اړخه د مبيع كفيل شى. نو هركله چې د كفالة اړتيا په عامه توګه (عام طور) باندې د بيع نه روسته راپيښيږى. نوځكه علامه مرغيناني ﷫ كتاب الكفالة د بيوع د بابونو نه روسته ذكركړې ده. ② دويمه وجه داده. كه كفالة د مكفول عنه د امر ځنې وى. نودا انتهاءً معاوضه وى. او بيع هم عقدمعاوضه ده. په دې وجه د بيوع نه روسته د كفالة احكام ذكرشوى دى.

كفيل: كفالت كونكې، مكفول عنه: چې دچا د اړخه كفالت كيږى. مكفول له: چې د چا لپاره كفالت كيږى. مكفول به: چې دكوم شئ كفالت كيږى. مثلاً حامد د خالد د اړخه د شاهد لپاره د زر روپو كفالت اوكړو. نو حامد كفيل، خالد مكفول عنه، شاهد مكفول له، اود مكفول به په ځائې مضمون به وئيلې شى. د كفاله ركن د طرفينو ﷮ په نيز ايجاب او قبول دې. اود امام ابويوسف ﷫ په نيز صرف د كفيل دا اړخه ايجاب دې. كه قبول اومونډې شى. اوكه اونه مونډې شى. او ددې شرط دادې. چه كفيل د مكفول به په سپارلو باندې قدرت لرلې شى. او دين،

دين صحيح وي.اود كفالة اهل هرهغه كس دي.چه د تصرفاتو اهل وي.اود كفالة حكم كفيل باندې د مطالبې واجبول دي.(جميل)

## دكفالت لغوي او شرعي معنى

الْكَفَالَةُ:هِيَ الضَّمُّ لُغَةً فرمائي.د كفالت معنى په لغت كي د ملاوولو (يوځائې كولو) ده قَالَ اللّٰهُ تَعَالَىٰ الله تعالى فرمائيلي دي..وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا او زكريا(عليه السلام) مريم خپل خان سره ملاؤ كړې ده ثُمَّ قِيْلَ هِيَ ضَمُّ الذِّمَّةِ إِلَى الذِّمَّةِ فِي الْمُطَالَبَةِ بيا ونيلي شوي دي.چه په مطالبه كي ذمه د ذمې سره ملاوول دي وَقِيْلَ فِي الدَّيْنِ او ونيلي شوي دي.چه په دين كي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او قول اول زيات صحيح دې.

حل اللغة: ① الضم-يوځاې كيدل-② الذمه-غاړه-③ الدين-قرض-④ المطالبة-غوښتنه

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله د كفاله معنى بيانوي.فرمائي چې دكفالت لغوي معنى ضم او ملاوول دي.لكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا﴾ يعني حضرت زكريا(عليه السلام) د حضرت مريم عليها السلام كفيل شو. يعنى حضرت زكريا(عليه السلام) حضرت مريم عليها السلام پخپل پرورش كي ملاؤ كړله.اهل شرع د كفالت دوې (دوه) تعريفونه كړي دي.① يودا چه ﴿ضم الذمة إلى الذمة في المطالبة﴾ يعنى يوه ذمه د بلې ذمې سره په مطالبه كي ملاوول.② دوهم دا چه ﴿ضمة الذمة إلى الذمة في الدين﴾ يعنى يوه ذمه د بلې ذمې سره په دين كي ملاوول.علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه رومبې قول زيات صحيح دې.ځكه چې د دوهم تعريف مطابق كفالې لپاره دين ضروري دې.حالانكه كفاله چې څنگه د مال درست ده.دغه ډول د نفس كفاله هم صحيح ده.او په كفاله بالنفس كي مال نه وي.نود دوهم تعريف په بنا (بنياد) باندې كفاله بالنفس د كفالې د تعريف نه خارجيږي.حالانكه كفاله بالنفس هم كفاله ده.دويمه وجه داده.چه د دوهم تعريف په بنا (بنياد) باندې د كفيل په ذمه كي دين ثابتيږي.او هركله چې د كفيل په ذمه كي دين ثابت شو.او اصيل برى نشو.نو دين دوې (دوه) شو.حالانكه دين صرف يو وو.نو په دې وجهو سره رومبې تعريف صحيح گرځولې شوې دې.

## د كفالت قسمونه

قَالَ فرمايي الْكَفَالَةُ ضَرْبَانِ: د كفاله دوې (دوه) قسمونه دي كَفَالَةٌ بِالنَّفْسِ كفاله بالنفس وَكَفَالَةٌ بِالْمَالِ اوكفاله بالمال فَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ جَائِزَةٌ نو كفاله بالنفس جائز ده وَالْمَضْمُوْنُ بِهَا إِحْضَارُ الْمَكْفُوْلِ بِهٖ او په دې سره چې د كوم شي كفالت كيږي.هغه د مكفول به حاضرول دي. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه كفاله بالنفس جائز نه ده اماملا يجوز لِأَنَّهُ كَفَلَ بِمَا لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيْمِهٖ ځكه چې دې دداسې شي كفيل شو.چه ددې په سپارلو باندې قادر نه دې إِذْ لَا قُدْرَةَ لَهُ عَلَى نَفْسِ الْمَكْفُوْلِ بِهٖ ځكه چې ده په نفس مكفول به باندې هيڅ قدرت نشته بِخِلَافِ الْكَفَالَةِ بِالْمَالِ په خلاف د كفاله بالمال لِأَنَّ لَهُ وِلَايَةً عَلَى مَالِ نَفْسِهٖ ځكه چې كفيل ته پخپل مال باندې ولايت حاصل دې.

حل اللغة: ① الاحضار-حاضرول-② يقدر-قادريږي-③ الزعيم-كفيل-④ الماسة-پيښيدل

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه د كفالې دوې (دوه) قسمونه دي.① كفاله بالنفس ② كفاله بالمال.زموږ په نيز كفاله بالنفس جائز ده.اوپه كفاله بالنفس كي چې د كوم شي كفاله كيږي.هغه نفس مكفول به حاضرول دي.يعنى صرف د هغه كس د ذات حاضرولوضامن او كفيل دې.د حضرت امام شافعي رحمه الله ضعيف قول دادې.چه كفاله بالنفس جائز نه ده.او ددوى ښكاره قول زموږ د مذهب موافق دې.د امام شافعي رحمه الله د ضعيف قول دليل دادې.چه په كفاله بالنفس كي كفيل د داسې شي التزام كړې دې.چه ددې په سپارلو باندې قادر نه دې.ځكه چې كفيل ته په نفس مكفول به باندې هيڅ قدرت نشته.لكه په هواكي د مارغه بيع ځكه ناجائز ده.چه بائع د مبيع په سپارلو باندې قادر نه دې.او كفيل ته د مكفول به په ذات باندې ځكه قدرت نشته.چه مكفول به آزاد دې.د كفيل د وړاندې د اطاعت سر نه كښته كوي.او كفيل ته د مكفول به په ذات باندې څه ولايت هم حاصل نه



دې.خصوصا كله چې دې دده د حكم نه بغير وكيل جوړشوې وي.اوكه د مكفول به په حكم سره كفيل جوړشوې وي.نو بيا هم د كفيل لپاره د مكفول به په ذات باندې ولايت نه ثابتيږي.نو هركله چې كفيل ته د مكفول به په ذات باندې ولايت حاصل نه دې.نوده ته به دمكفول به ذات سپارلو باندې قدرت هم حاصل نه وي.اوهركله چې د مكفول به ذات سپارلو باندې قدرت نشته.نو كفاله بالنفس به جائز هم نه وي. ځكه چې د كفاله جائز كيدلو شرط دادې.چه كفيل د مكفول به په سپارلو باندې قادر وي.په خلاف د كفاله بالمال، چې كفيل ته پخپل مال باندې پوره پوره ولايت حاصل دې.او هركله چې كفيل ته پخپل مال باندې ولايت حاصل دې.نو ددې په سپارلو به قادرهم وي.او هركله چې كفيل د مال په سپارلو باندې قادر دې.نو كفاله بالمال به جائز وي.

وَلَنَا او زموږ دليل دادې قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الزَّعِيْمُ غَارِمٌ (1) نبى كريم ﷺ فرمائيلي دي.چه كفيل ضامن دې وَهٰذَا يُفِيْدُ مَشْرُوْعِيَّةَ الْكَفَالَةِ بِنَوْعَيْهِ اودا قول دواړه قسمونو سره د كفالې د مشروعيت فائده وركوي وَلِأَنَّهُ يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيْمِهٖ بِطَرِيْقِهٖ او ځكه چې كفيل دده په سپارلو باندې په دې طريقه قادر دې بِأَنْ يَعْلَمَ الطَّالِبُ مَكَانَهُ چې كفيل مكفول له ته د هغه د اوسيدو ځاني اوښائى فَيُخَلِّي بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ نود مكفول له او مكفول به په منځ كي تخليه اوكړي أَوْ يَسْتَعِيْنَ بِأَعْوَانِ الْقَاضِيْ فِيْ ذٰلِكَ يا په دې اړه كي د قاضى د معاونينو (كاركنان) نه كومك واخلي وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَيْهِ اود كفاله بالنفس اړتيا هم راپيښيږي وَقَدْ أَمْكَنَ تَحَقُّقُ مَعْنَى الْكَفَالَةِ او په كفاله بالنفس كي د كفالې معنى ثابتول هم ممكن دي وَهُوَ الضَّمُّ فِي الْمُطَالَبَةِ فِيْهِ او هغه په مطالبه كي د ذمې ملاوول دي.

تشريح:- زموږ ① دليل دادې.رسول هاشمي ﷺ فرمائيلي دي. ﴿الزعيم غارم﴾ يعنى كفيل ضامن دې.دا حديث د خپل اطلاق په وجه كفالې د دواړو قسمونو د مشروعيت فائده وركوي.② دوهم دليل اود امام شافعي رحمه الله د دليل خواب دادې.دا ونيل چې كفيل د مكفول به د ذات په سپارلو باندې قادر نه دې.غلط دي.بلكه كفيل د مكفول به په ذات سپارلو باندې قادر دې.په دې طريقه چې كفيل خپل مكفول له ته ددغه كس د اوسيدوځاني اوښائى.د كوم كس د ذات چې دې سړي كفالت كړي دې.يعنى د طالب يعنى مكفول له او مطلوب يعنى مكفول بنفسه په مينځ كي تخليه اوكړي.يا په دې طريقه كفيل د قاضى د پوليس نه كومك واخلي.اومكفول بنفسه د قاضى په مجلس كي ، مكفول له ته د حوالـه كاوه لپاره پيش كړي.③ دريم دليل د كفاله بالنفس په كفاله بالمال باندې قياس كول دي.يعنى لكه څنگه چې دكفاله بالمال اړتيا راپيښيږي.دغه ډول دكفاله بالنفس اړتيا هم راپيښيږي.اوپه كفاله بالنفس كي د كفاله معنى ثابتول هم ممكن دي.په دې طريقه چې لكه څنگه كفيل خپله ذمه د مكفول عنه ذمې سره د مال په مطالبه كي ملاوولې شي.دغه ډول د مكفول بنفسه حاضرولو په مطالبه كي هم ملاوولې شي.نوهركله چې په كفاله بالنفس كي د كفاله معنى هم موجود ده.اود كفاله بالنفس اړتيا هم راپيښيږي.نود كفاله بالنفس جائز كيدلو كي څه شبه پاتې كيږي.

## د كفالت منعقدكيدلو الفاظ

قَالَ فرمايي وَتَنْعَقِدُ او كفاله بالنفس منعقد كيږي إِذَا قَالَ تَكَفَّلْتُ بِنَفْسِ فُلَانٍ أَوْ بِرَقَبَتِهٖ أَوْ بِرُوْحِهٖ أَوْ بِجَسَدِهٖ أَوْ بِرَأْسِهٖ كله چې كفيل ووايي چې زه د فلانى د نفس،يا د فلانى د رقبې، يا دده د روح،يا دده دجسم،يا دده د سر كفيل شوم وَكَذَا بِبَدَنِهٖ او دغه ډول (كله چې اووائى) ما دده د بدن كفالت اوكړو وَبِوَجْهِهٖ يا ما دده د مخ كفالت اوكړو لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَلْفَاظَ يُعَبَّرُ بِهَا عَنِ الْبَدَنِ ځكه دا الفاظ داسې دي.چه په دې سره پوره بدن تعبير كولاى شي إِمَّا حَقِيْقَةً يا حقيقتاً أَوْ عُرْفًا يا عرفاً عَلَى مَا مَرَّ فِي الطَّلَاقِ لكه څنگه چې په كتاب الطلاق كي تيرشوي دي.

(١) من حديث أبي أمامة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في البيوع باب ٨٨ رقم ٣٥٦٥ والترمذي في البيوع باب ٣٩ وابن ماجه في الصدقات باب ٩ وأحمد في المسند (٢٦٧/٥) والدارقطني في سننه (٤٠/٣) والبيهقي في السنن الكبرى (١٤٦/٦) رقم (١١٤٧٤)_

تشریح:- د کفالې د انواعو او اقسامونه د فراغت نه روسته دلته کې د هغه الفاظو ذکر دې. کوم الفاظ چې په کفاله کې استعمالیږي. اوپه کومو الفاظو چې کفاله منعقد کیږي. په دې سلسله کې قاعده داده. چه په کومو الفاظو سره د انسان پوره بدن تعبیر کولې شي. که حقیقتاً وي. لکه لفظ د نفس، جسد، روح وغیره. او که عرفاً وي. لکه لفظ د رقبه راس او وجه. په دې سره به کفاله منعقد کیږي. مثلاً یوکس اووئیل. چه زه د فلانی د نفس یا دده د روح یا دده د جسم یا دده د سر یا دده د بدن، یا دده د مخ کفیل شوم. نو په دې الفاظو سره به کفاله منعقد کیږي. ځکه چې دا واړه الفاظ داسې دي. چه په دې سره حقیقتاً یا عرفاً پوره بدن تعبیر کولې شي. اود پوره بدن کفالت چونکه صحیح دې. په دې وجه د ذکرشوي د بدن اندامونو اړخ ته په کفالت منسوب کولو سره کفاله صحیح کیږي. لکه څنګه چې په کتاب الطلاق کې تیرشوي دي. که د ذکرشوي د بدن اندامونو اړخ ته طلاق منسوب کړې شو. نو طلاق واقع کیږي. نوهم دغه ډول دلته کې هم د ذکرشوي د بدن اندامونو اړخ ته کفالت منسوب کاوه سره کفاله درست کیږي.

کَذَا إِذَا قَالَ او هم دغه ډول کله چې اووائي. بِنِصْفِهِ چې (ما) دده د نصف أَوْبِثُلُثِهِ یا ثلث، أَوْبِجُزْءٍمِنْهُ یا دده د کوم یو جزء کفالت اوکړو هٔ لِأَنَّ النَّفْسَ الْوَاحِدَةَ فِي حَقِّ الْكَفَالَةِ لَا تَتَجَزَّأُ ځکه چې د کفالت په حق کې د نفس واحده تکړې (حصې) نه کیږي فَكَانَ ذِكْرُ بَعْضِهَا شَائِعًا كَذِكْرِ كُلِّهَا نود یو نفس جزء شائع (چې واړه بدن ترې مراد کیږي) ذکر کول د کل نفس ذکر کاوه پشان دي.

حل اللغة: ① تتجزا-تقسیمیږي-② شائع-خورشوې-③ رجل-پښه-④ ید-لاس

تشریح:- اوکه کفاله جزء شائع یعنې غیرمعین جزء اړخ ته منسوب کړې شوه. مثلاً دائې اووئیل. چه زه د فلانی نصف یا ثلث یا د یو جزء کفیل شوم. نودا کفالت هم درست دې. ځکه چې یو نفس د کفاله په حق کې متجزی او منقسم کیږي نه. نو جزء شائع او غیرمعین جزء ذکرکول داسې دي. لکه کُل بدن او ټول سهار نفس ذکرکول.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ ددې په خلاف که وې وئیل تَكَفَّلْتُ بِيَدِ فُلَانٍ أَوْبِرِجْلِهِ چې ما د فلانی د لاس یا دده د پښو کفالت اوکړو لِأَنَّهُ لَا يُعَبَّرُ بِهِمَا عَنِ الْبَدَنِ ځکه چې په دې دواړو سره د انسان بدن نه تعبیر کیږي حَتَّى لَا تَصِحُّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَيْهِمَا تردې چې دې اړخ ته طلاق منسوب کول صحیح نه دي وَفِيمَا تَقَدَّمَ تَصِحُّ او په تیرو شوو اندامونو کې صحیح دي.

تشریح:- البته که دائې اووئیل. چه زه د فلانی د لاس یا د فلانی د پښو کفیل شوم. نو کفالت به درست نه وي. ځکه چې لفظ د لاس او لفظ د پښو سره د انسان پوره بدن نه تعبیر کیږي. هم دا وجه ده. که لاسونو یا پښو اړخ ته طلاق منسوب کړې شو. نو طلاق به نه واقع کیږي. اوکوم اندامونه چې وړاندې تیرشوي دي. یعنې نفس، سټ وغیره او نصف، ثلث وغیره. دې اړخ ته طلاق منسوب کولو سره طلاق واقع کیږي.

**په "ضمنته" لفظ سره د کفالت منعقد کیدلو حکم**

وَكَذَا إِذَا قَالَ اوهم دغه ډول که وې وئیل ضَمِنْتُهُ چه زه ددې ضامن شوم لِأَنَّهُ تَصْرِيحٌ بِمُوجِبِهِ ځکه چې دا د کفالې د موجب تصریح ده. أَوْقَالَ هُوَعَلَيَّ یا وې وئیل. چه هغه په ما باندې دي لِأَنَّهُ صِيغَةُ الْإِلْتِزَامِ ځکه چې دا د التزام صیغه ده أَوْ قَالَ إِلَيَّ یا وې وئیل. چه هغه زما په اړخ دې لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى عَلَيَّ فِي هٰذَا الْمَقَامِ ځکه چې دا په دې مقام کې د "علی" په معنی کې دې قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَنْ تَرَكَ مَالًا نبي کریم ﷺ فرمائیلي دي. چه کوم کس مال پریخودو فَلِوَرَثَتِهِ هغه دده د وارثانو دې وَمَنْ تَرَكَ كَلًّا أَوْعِيَالًا فَإِلَيَّ (١) اوچاچه کوم یتیم اولاد یا د پرورش قابل رشته دار پرېښول قالي نو هغه زما په اړخ دي.

(١) من حدیث أبی هریرة ﷺ أخرجه البخاری فی الفرائض باب ٢٥ رقم ٦٧٦٣ ومسلم فی الفرائض رقم ١٧ وأبوداود فی الخراج الإمارة والفئ باب ١٥ رقم ٢٩٥٥ وأحمد فی المسند (٢/٣٥٦)_



حل اللغة: ① تصریح-ښکاره-② الالتزام-لازمول-③ الترک-پریخودل-④ عیال-اهل وعیال

تشریح:- امام ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي. چه په لفظ «ضمنته» "زه د فلانی د نفس ضامن شوم" وئیلو سره هم کفاله منعقد کیږي. ځکه چې د لفظ ضمان ادا کاوه نه وړاندې د عقدکفاله د موجب صراحت شوې دې. اوعقد چونکه د موجب په تصریح سره منعقد کیږي. ځکه په لفظ د ضمان سره کفاله منعقد کیږي. لکه څنګه چې عقدبیع په لفظ د تملیك سره منعقد کیږي. ځکه چې تملیك د عقدبیع موجب دې. اوکه وې وئیل «هوعلی» "ماپخپل ځان باندې لازم کړو"، یعنې چې کله دده حاضرول مطلوب وي. نوزه به دې حاضروم. دې سره هم کفاله منعقد کیږي. ځکه چې لفظ د "علی" د التزام صیغه ده. او په کفاله کې هم چونکه د مطالبې التزام کیږي. په دې وجه په لفظ د "علی" سره کفاله منعقد کیږي. اوکه وې وئیل «هوالی» یعنی "دا زما په اړخ دې"، نو په دې سره هم کفاله منعقد کیږي. ځکه چې لفظ د "الی" په دې مقام کې د "علی" په معنی کې دې او په لفظ د "علی" سره کفاله منعقد کیږي. ځکه به په لفظ د "الی" سره منعقد کیږي. او لفظ د "الی" د "علی" په معنی کې کیدل د حدیث نه هم ثابت دي. ځکه چې د رسول الله ﷺ ارشاد دې. «من ترک مالا فلورثته ومن ترک کلا او عیالا فالی» یعنی "چاچه مال پریښولو. نودا دده د وارثانو لپاره دې. اوچا چې یتیم اولاد یا د پرورش محتاج رشته دار پریخودل. نو ددوی ذمه داري په ما ده. یعنی زه ددوی کفیل یم"، اوګورئ. د الله رسول ﷺ "الی" د "علی" په معنی کې استعمال کړې دي.

وَكَذَا إِذَا قَالَ اوهم دغه ډول که وې وئیل أَنَا زَعِيمٌ بِهِ أَوْقَبِيلٌ بِهِ چې زه دده د ضمانت زعیم یم. یا قبیل یم لِأَنَّ الزَّعَامَةَ هِيَ الْكَفَالَةُ ځکه چې زعامت هم کفالت دې وَقَدْ رَوَيْنَا فِيهِ او مونږ ددې په اړه کې حدیث روایت کړې دې وَالْقَبِيلُ هُوَالْكَفِيلُ او قبیل هم کفالت دې وَلِهٰذَا سُمِّيَ الصَّكُّ قَبَالَةً اوهم په دې وجه چك ته قباله وائي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ أَنَا ضَامِنٌ لِمَعْرِفَتِهِ ددې په خلاف که چا اووئیل. چه زه دده د شناخت (پیژندګلو) ضامن یم لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْمَعْرِفَةَ دُونَ الْمُطَالَبَةِ ځکه چې ده د شناخت التزام کړې دې. د مطالبې (التزام) ئې نه دې کړې.

حل اللغة: ① زعیم-ضامن-② الزعامة-ضمانت-③ الصک-چك-④ المعرفة-شناخت

تشریح:- اوکه «انا زعیم یا انا قبیل» ئې اووئیل. بیا به هم کفاله منعقد کیږي. ځکه چې زعامت هم د کفالت په معنی کې مستعمل دې. لکه چې په حدیث «الزعیم غارم» کې وارد شوي دي. اود قبیل معنی هم کفیل راځي. هم دا وجه ده. چه چك یا دستاویز ته قباله وئیلې شي. ځکه چې انسان څه هم په دستاویز (خط) کې لیکي. هغه واړه پخپل ځان باندې لازم کوي. او پخپل ځان باندې لازمونکي ته کفیل وائي. په دې وجه «انا قبیل» د «انا کفیل» په معنی کې دې. البته که یو کس د مکفول بنفسه په اړه کې اووئیل چه زه دده د شناخت (پیژندګلو) ضامن یم. نو په دې سره به کفاله نه منعقد کیږي. ځکه چې په دې صورت کې کفیل د شناخت التزام کړې دې. د مطالبې التزام ئې نه دې کړې. حالانکه کفاله د مطالبې د التزام نوم دې. د مکفول بنفسه د شناخت لپاره د التزام نوم کفاله نه دې.

**په کفالت بالنفس کښې د متعین وخت په شرط سره د مکفول په حاضرولو حکم**

قَالَ فرمایي فَإِنْ شَرَطَ فِي الْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ تَسْلِيمَ الْمَكْفُولِ بِهِ فِي وَقْتٍ بِعَيْنِهِ بیا که په کفاله بالنفس کې ئې په معین وخت کې د مکفول به د سپارلو شرط اوکړو لَزِمَهُ إِحْضَارُهُ نو په کفیل به د مکفول حاضرول لازمي وي إِذَا طَالَبَهُ فِي ذٰلِكَ الْوَقْتِ وَفَاءً بِمَا الْتَزَمَهُ په دې شرط چې مکفول له په دغه وخت کې د کفیل نه مطالبه اوکړي. چه د کوم ده التزام کړې دې. هغه پوره کړي فَإِنْ أَحْضَرَهُ نو که کفیل هغه حاضر کړو. (نو ډیره ښه ده) وَإِلَّا حَبَسَهُ الْحَاكِمُ کنې حاکم به دې قید کړي لِامْتِنَاعِهِ عَنْ إِيفَاءِ حَقٍّ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِ ځکه چې دې دداسې حق نه منع شوې دې. کوم چې په ده باندې واجب دې. وَلٰكِنْ لَا يَحْبِسُهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ خو حاکم به دې په وړومبی ځل کې نه قید کوي لَعَلَّهُ مَا دَرَى لِمَاذَا يُدْعٰى ځکه شاید هغه ته معلوم نه وي. چه زه ئې ولې راغوښتلی یم.

**حل اللغة:** ① احضار-حاضرول-② الامتناع-منع كول-③ الحبس-بنديز-④ الايفاء-ادا كول

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې، كه په كفاله بالنفس كې په يومعين وخت كې د مكفول بنفسه سپارلو شرط اوكړې شو.نو په كفيل به هم په دغه معين وخت كې د مكفول بنفسه سپارل لازم وي،په دې شرط چې مكفول له د كفيل نه هم په دې وخت كې مطالبه اوكړي،چه كفيل دا ادا كړي.د څه چې ده التزام كړې دې.نوكه كفيل مكفول بنفسه په وخت معين كې اوسپارلو.نو فبها،كفيل به برئ الذمه شي.اوكه كفيل مكفول بنفسه حاضرنكړې شو.نوحاكم به په رومبې خل كفيل نه ګرفتاروي.او جيل خانه كې د اچولو حكم به نه كوي.خكه ډيره ممكنه ده.چه كفيل ته دا معلوم نه وي.چه زه ئې ولې راغوښتې يم.او هركله چې كفيل ته داهم معلومه نه وي.چه زه حاكم ولې طلب كړې يم.نوكفيل به د مكفول بنفسه په نه سپارلوكې ظالم هم نه وي.او هركله چې كفيل ظالم نشو.نودې به په قيدخانه كې هم نشي اچولې.خكه چې په قيدكې اچول د ظالم سزا ده.اوكه كفيل ته معلوم شو.چه حاكم د مكفول بنفسه حاضرولو لپاره طلب كړې دې.خو ددې باوجود ئې حاضر نكړې شو.نو ددې دوې (دوه) صورتونه دي.يا به د حاضرولو نه عاجز وي.يا به په حاضرولو باندې قادر وي.كه د قدرت باوجود ئې حاضرنكړې شو.نو حاكم به كفيل قيد كړي.خكه چې كفيل د يو واجبى حق ادا كاوه نه منع شوې دې.اود واجبى حق ادا كاوه نه منع كيدونكې د شريعت په نظركې ظالم دې.اود ظالم سزا حبس او قيد دې.په دې وجه به په دې صورت كې كفيل قيد كولې شي.

| |
|---|
| وَلَوْغَابَ الْمَكْفُولُ بِنَفْسِهِ اوكه مكفول بنفسه غائب شو أَمْهَلَهُ الْحَاكِمُ مُدَّةَ ذَهَابِهِ وَمَجِيئِهِ نو حاكم به ده ته دهغه د تلو راتلو د مودې پورې مهلت وركړي فَإِنْ مَضَتْ وَلَمْ يُحْضِرْهُ نوكه موده تيره شوه.او كفيل هغه حاضر نكړې شو يَحْبِسُهُ نو حاكم به دې قيد كوي لِتَحَقُّقِ امْتِنَاعِهِ عَنْ إِيفَاءِ الْحَقِّ خكه چې دحق ادا كاوه نه دده منع كيدل متحقق شوى دى. |

**حل اللغة:** ① المهلة-مهلت-② ينظر-انتظاركوي-③ المسر-غريب-④ لحق-ملحق شي

**تشريح:**- اوكه كفيل د مكفول بنفسه سپارلو نه عاجز دې،په دې طريقه چې مكفول بنفسه غائب شو.نو ددې هم دوې (دوه) صورتونه دي،د مكفول بنفسه د اوسيدوخائې به يا معلوم وي.يا به دده د اوسيدو خائې معلوم نه وي.كه معلوم وي.نوحاكم به ده ته د آمدورفت(د تلو راتلو) وختـه پورې مهلت وركړي.يعنى دومره موده به مهلت وركوي.چه كفيل ددې خائې نه لاړشي.اومكفول بنفسه چې كوم خائې موجود دې.هغه سره ملاؤ شي.اوهغه د خان سره راولي.او دلته كې راورسي.بيا كه دا موده تيره شوه.او كفيل مكفول بنفسه حاضر نكړې شو.نو په دې صورت كې به كفيل قيد كولې شي.خكه چې په دې صورت كې هم كفيل د واجبى حق ادا كاوه نه منع شوې دې.اود واجبى حق اداكولونه منع كيدل ظلم دې.اود ظلم سزا حبس اوقيد دې.خكه به په دې صورت كې هم كفيل په قيدخانه كې اچولې شي.اوكه د اوسيدو خائې معلوم نه وي.يعنى مكفول بنفسه غائب دې.اودده د اوسيدوخائې معلوم نه دې.نوپه دې صورت كې به د كفيل نه في الحال مطالبه ساقطيږي.يعنى تركومه پورې چې دمكفول بنفسه د اوسيدو خائې معلوم نشي.نود كفيل څخه به مطالبه ساقط وي.خكه چې په دې صورت كې كفيل او مكفول له دواړه في الحال د مكفول بنفسه سپارلو نه عاجزكيدو باندې متفق دي.اوكه كفيل وائي.چه ماته دده د اوسيدو خائې معلوم نه دې.اومكفول له وائي.چه كفيل ته دده د اوسيدوخائې معلوم دې.نوكه د مكفول بنفسه وتل،او سفر كول مشهور وي.يعنى خلګو ته معلومه وي.چه دې فلانى خائې ته دتجارت وغيره په غرض سره خې راخى.نو په دې صورت كې به د مكفول له قول معتبر وي.اوكفيل ته به هغه خائې ته د تللو حكم وركولې شي.د كوم خائې چې خلګو نشاندهى كړې ده.خكه چې په دې صورت كې ښكاره حال دمكفول له موافق دې.او ښكاره حال چې دچا موافق وي.هغه مدعى عليه وي.په دې وجه مكفول له مدعى عليه شو.او هركله چې مكفول له مدعى عليه دې.نوكفيل به مدعى وي.او مسئله مفروضه داده.چه مدعى سره بينه موجود نه وي.نود مدعى عليه قول معتبر وي.اوكوم وخت چې مدعى سره بينه موجود وي.خكه به په دې د مدعى عليه يعنى د مكفول له قول معتبر وي.اوكه د مكفول بنفسه د وتلو اود تجارت وغيره لپاره د تلو خائې مشهورنه وي.نود كفيل قول به معتبر وي.خكه چې په دې صورت كې د كفيل قول د ښكاره او اصل موافق دې.لهذا كفيل به مدعى عليه وي.اومدعى سره د بينه نه



كيدلو په صورت كې د مدعى عليه قول معتبر وي.په دې وجه به په دې صورت كې د مدعى عليه يعنى د كفيل قول معتبر وي.

## د مكفول بنفسه مرتد كيدلوپه صورت كښې د كفيل حكم

| |
|---|
| قَالَ امام قدورى رحمه الله فرمايي وَكَذَا إِذَا ارْتَدَّ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ اوهم دغه ډول كه مكفول بنفسه،،نعوذ بالله،، مرتد شو وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ ) او دارالحرب سره لاحق شو وَهَذَا لِأَنَّهُ عَاجِزٌ فِي الْمُدَّةِ اودا خكه چې كفيل د دومره مودې پورې عاجز دې فَيُنْظَرُ نوده ته به مهلت ور كولاى شي كَالَّذِي أُعْسِرَ لكه څنګه چې هغه كس ته ( مهلت وركولې شي) كوم چې فقير شوې دې. |

**تشريح:**- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي.كه مكفول بنفسه مرتد شو.او دارالحرب ته لاړو.او دارالحرب والو سره د دارالاسلام د خلګو د تګ راتګ په سلسله كې دا معاهده ده.چه دوى زموږ دارالاسلام ته راتلې شي.او موږ دارالحرب ته تلې شو.نو په داسې صورت كې به هم كفيل ته د تګ راتګ د مودې پورې مهلت وركولې شي.كه په دې موده كې ئې راوستلو.او حاضر ئې كړو.نو،،سبحان الله،،ګنى كفيل به جيل خانې ته رسولې شي.او په دې صورت كې مهلت خكه وركړې شو.چه كفيل دومره مودې پورې عاجز دې.او عاجزته مهلت وركولې شي.خكه كفيل ته دومره موده مهلت وركړې شوې دې.لكه څنګه چې د قرضدارى د پور ادا كاوه څه وعده وى.خودې د خپلې تنګدستئ ( غريبئ ) په وجه داسې شو.چه قرضه نشى اداكولې.نوده ته به د فراخئ( مالدارئ) وختـه پورې مهلت وركولې شي.نوهم دغه ډول په ذكرشوى صورت كې هم چونكه كفيل عاجز دې.خكه به د تګ راتګ وختـه پورې ده ته مهلت وركولې شي. اوكه د دارالحرب او دارالاسلام په مينځ كې داسې څه معاهده نه وي.نو كفيل چونكه په دې صورت كې بالكل عاجز دې.خكه به دده نه اوس هيڅ مؤاخذه نشى كولې.

| |
|---|
| وَلَوْسَلَّمَهُ قَبْلَ ذَلِكَ او كه كفيل مكفول بنفسه د معين وخت نه وړاندې اوسپارلو بَرِئَ نو برى شو لِأَنَّ الْأَجَلَ حَقُّهُ خكه چې ميعاد د كفيل حق دې فَيَمْلِكُ إِسْقَاطَهُ نو هغه ددې د ساقطولو هم مالك دې كَمَا فِي الدَّيْنِ الْمُؤَجَّلِ لكه څنګه چې په نيتيه داره قرضه كې كيږي. |

**حل اللغة:** يملك-مالكيږي-اسقاط-ساقطول-الدين-قرض-المؤجل-نيتيه

**تشريح:**- اوكه كفيل مكفول بنفسه د وخت معين نه وړاندې اوسپارلو.نو كفيل به برى وي.خكه چې ميعاد د كفيل حق دې.او هر صاحب حق ته د خپل حق ساقطولو اختيار وي.خكه به كفيل ته هم د خپل حق ميعاد ساقطولو اختيار وي.لكه څنګه چې په ميعادى پور كې دى.كه قرضدارى د مودې نه وړاندې پور اداكړو.نو قرضدارې به برى وي.خكه چې مود دده حق دې.نوهم دغه ډول په كفاله كې هم ذكرشوې موده چونكه د كفيل حق دې.په دې وجه د مودې نه وړاندې ادا كاوه سره به برى كيږي.

## د مكفول له په مخاصمې د قدرت په خائې كښې د مكفول په حاضرولو حكم

| |
|---|
| قَالَ فرمايي وَإِذَا أَحْضَرَهُ اوكه كفيل هغه ( مكفول بنفسه) په داسې خائې كې اوسپارلو وَسَلَّمَهُ فِي مَكَانٍ يَقْدِرُ الْمَكْفُولُ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَهُ فِيهِ كوم خائې كې چې مكفول له ته دهغه سره د خصومت قدرت شته مِثْلُ أَنْ يَكُونَ فِي مِصْرٍ بَرِئَ الْكَفِيلُ مِنَ الْكَفَالَةِ لكه په ښار كې دننه،نو كفيل به د كفالې نه برى شي. |

**حل اللغة:** مصر-ښكار-يخاصم-جګړه كوى-التسليم-سپارل-يقدر-قادريږي

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.كه كفيل مكفول بنفسه راوستلو.او په داسې خائې كې ئې مكفول له ته اوسپارلو .كوم خائې چې مكفول له دده سره مخاصمه اومحاكمه كولې شي.مثلاً په ښاركې دننه ئې اوسپارلو.نو كفيل به برى وي.كه مكفول له دا قبول كړي.اوكه قبول ئې نكړي.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ أَتَى بِمَا الْتَزَمَهُ خكه چې ده د كوم شئ التزام كړې وو.هغه ئې پوره كړو وَحَصَلَ الْمَقْصُودُ بِهِ او په داسې كاوه سره مقصود حاصليږي وَهَذَا لِأَنَّهُ مَا الْتَزَمَ التَّسْلِيمَ إِلَّا مَرَّةً اودا خكه چې كفيل د يو خل سپارلو التزام كړې وو. |

**تشریح:-** ځکه چې د کفاله بالنفس نه مقصود د قاضي په عدالت کې مخاصمه اومحاکمه ده.نو هرکله چې کفیل په داسې ځائې کې اوسپارلو. کوم ځائې مکفول له، مکفول بنفسه سره مخاصمه اومحاکمه کولې شي.نو مقصود حاصل شو.او مقصود په دې وجه هم حاصل شو.چه کفیل صرف یوځل سپارل خپل ځان باندې لازم کړې وو.او یوځل ده اوسپارلو. بهرحال د کفاله مقصود حاصل شوې دې.اوهرکله چې د کفالـه مقصود حاصل شو.نوکفیل به بری وی.

**فوائد:** د صاحبینو رحمهما الله په نیز دکفیل،مکفول بنفسه په داسې ښار کې سپارل معتبر دی.په کوم ښارکې چې دې کفیل شوې وو.اود حضرت امام صاحب رحمه الله په نیز دا شرط نه دې.بلکه په کوم ښارکې ئې چې هم اوسپاری.معتبر به وی. (كذا في اشرف الهدايه)

### د قاضي په مجلس کښې د سپارلو د شرط په وخت بازارکښې د سپارلو حکم

| |
|---|
| **قَالَ وَإِذَا كَفَلَ** اوکه په دې شرط باندې کفیل شو **عَلَى أَنْ يُسَلِّمَهُ فِي مَجْلِسِ الْقَاضِي** چې دې به هغه د قاضي په مجلس کې سپاری **فَسَلَّمَهُ فِي السُّوقِ بَرِئَ** بیا دې سړی هغه په بازار کې اوسپارلو.نو بری شو **لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ** ځکه چې مقصود حاصل شوې دې. |

**حل اللغة:** ① السوق-بازار-② ① المعاونة-مدد کیدل-③ التقیید-مقید کول-④ بیرا-بری کیږی

**تشریح:-** مسئله: که یو کس په دې شرط کفیل شو.چه زه به مکفول بنفسه د قاضي په مجلس کې سپارم. خوده دا په بازارکې مکفول له ته اوسپارلو.نوکفیل به بری وی.ځکه چې د مکفول له مقصود یعنی قدرت علی المحاکمه حاصل دې.ځکه چې مکفول له دې قاضي له بوتلې شي.او دده سره مخاصمه اومحاکمه کولې شي.

| |
|---|
| **وَقِيلَ فِي زَمَانِنَا: لَا يَبْرَأُ.** ([1]) او وئیلی شوی دی.چې زموږ په زمانه کې نه بری کیږی **لِأَنَّ الظَّاهِرَ الْمُعَاوَنَةُ عَلَى الِامْتِنَاعِ** ځکه ښکاره ده.چه ( خلګ به دده) په خلاصولو باندې کومك اوکړی **لَا عَلَى الْإِحْضَارِ** په حاضرولو باندې به ئې کومك اونکړی **فَكَانَ التَّقْيِيدُ مُفِيدًا** په دې وجه به د قاضي د مجلس قید لګول مفید وی. |

**تشریح:-** متاخرینو عالمانو وئیلی دی.چه زموږ په زمانه کې د قاضي د مجلس نه علاوه په بازار وغیره کې سپارلو سره کفیل نه بری کیږی.ځکه چې نن سبا د فسق وفجور اود فساد زمانه ده.نوکه کفیل د قاضي د مجلس نه علاوه په بازاروغیره کې مکفول بنفسه، مکفول له ته حواله کړو.اومکفول بنفسه شور جوړ کړو.او خپل مظلومیت ئې ښکاره کړو.نو خلګ به دده په خلاصولوکې دده کومك اوکړی.اود مکفول له به په دې اړه کې هیڅ کومك اونکړی.چه مکفول بنفسه د قاضي په عدالت کې حاضر کړی.چه مکفول له د خپل حق په سلسله کې دده سره مخاصمه اوکړی.نوهرکله چې دا خبره ده.نود مکفول بنفسه حاضرول به د قاضي مجلس سره مقید کول ګټور وی.او هرکله چې د قاضي مجلس سره مقید کول مفید دی.نود قاضي په مجلس کې د حاضرولو شرط سره د قاضي د مجلس نه علاوه بل ځائې کې حاضرول به معتبر نه وی.او په دې سره به کفیل نه بری کیږی.

### په یو ډګر یا ځنګل کښې د سپارلو حکم

| |
|---|
| **وَإِنْ سَلَّمَهُ فِي بَرِّيَّةٍ** اوکه کفیل مکفول بنفسه په یو میدا ن ( اوځنګل) کې اوسپارلو **لَمْ يَبْرَأْ** نو کفیل نه بری کیږی **لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْمُخَاصَمَةِ فِيهَا** ځکه چې هغه دده سره په دې ځائې ( میدان) کې په مخاصمه کاوه قادر نه دې **فَلَمْ يَحْصُلِ الْمَقْصُودُ** نو مقصود به نه حاصلیږی **وَكَذَا إِذَا سَلَّمَهُ فِي سَوَادٍ** او هم دغه ډول که کفیل مکفول بنفسه په کلوکې اوسپارلو **لِعَدَمِ قَاضٍ يَفْصِلُ الْحُكْمَ فِيهِ** ځکه چې هلته کې هیڅ قاضي نه وی.چه د حکم فیصله اوکړی. |

[1]) القـول الـراجح هـو هـذا قـول المتـاخرين كـذا فـى فـتح القـدير(٢٨٩\٦) والبحرالرائـق (٢١١\٦) والعنايـة (٢٨٨\٦) والدرالمختار(٢٨٦\٤) نقلاً عن القول الراجح (٨٩\٢)-



**حل اللغة:** ① السواد-تور-② الشهود-جمع د شاهد ،ګواه-③ السجن-جیلخانه-④ الحبس-بندیز

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که کفیل مکفول بنفسه په یو ډګر یا ځنګل کې مکفول له ته اوسپارلو.نو بالاتفاق به کفیل د کفالې نه بری نه وی.ځکه چې په داسې غیرآباد ځائې کې مکفول له،مکفول بنفسه سره مخاصمه نشی کولې.اوهرکله چې مکفول له، مکفول بنفسه سره په مخاصمه کاوه باندې قادرنه دې.نود کفالې نه چې څه مقصود وو.یعنی په مخاصمه باندې قادرکیدل،هغه به هم نه حاصلیږی.او هرکله چې مقصود حاصل نشو.نو کفیل به د کفالې نه هم بری نه وی.دغه ډول که کفیل مکفول بنفسه په داسې کلوکې مکفول له ته حواله کړو.چه هلته کې قاضي او حاکم نه اوسیږی.نو په دې سره به هم کفیل نه بری کیږی.ځکه چې هرکله هلته کې فیصله ورکونکې قاضي موجود نه دې.نومکفول له، مکفول بنفسه سره څنګه مخاصمه کولې شي. نو په داسې کلو کې سپارلو سره هم د مکفول له مقصود نه حاصلیږی.په دې وجه به دلته کې سپارلو سره هم کفیل نه بری کیږی.

| |
|---|
| **وَلَوْ سَلَّمَهُ فِي مِصْرٍ آخَرَ غَيْرِ الْمِصْرِ الَّذِي كَفَلَ فِيهِ** او که ددې ښار نه علاوه په کوم کې چې کفیل شوې وو.وې سپارلو **بَرِئَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به بری وی **لِلْقُدْرَةِ عَلَى الْمُخَاصَمَةِ فِيهِ** ځکه چې مکفول له په دې ښار کې په مخاصمه باندې قادر دې. |

**تشریح:-** اوکه ددې ښار نه علاوه په کوم کې چې کفیل شوې وو.په بل کوم ښار کې کفیل مکفول بنفسه اوسپارلو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به کفیل بری وی.دلیل دادې.چه مکفول له په دې ښارکې هم په مخاصمه کاوه باندې قادر دې.ځکه چې مخاصمه اومحاکمه په هرښارکې د قاضي وړاندې کولې شي.نوهر کله چې د هرقاضي وړاندې مخاصمه کول او فیصله اخستل ممکن دی.نود مکفول بنفسه سپارلو په سلسله کې دواړه ښارونه برابر شو.

| |
|---|
| **وَعِنْدَهُمَا لَا يَبْرَأُ** ([1]) اود صاحبینو رحمهما الله په نیز نه بری نه کیږی **لِأَنَّهُ قَدْ تَكُونُ شُهُودُهُ فِيمَا عَيَّنَهُ** ځکه چې کله د مکفول له ګواه په هغه ښار کې وی.کوم چې ده معین کړې وو. |

**تشریح:-** اود صاحبینو رحمهما الله په نیز په بل ښارکې سپارلو سره کفیل نه بری کیږی.امام مالك امام شافعي او امام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دی.ځکه چې کله کله داسې کیږی.چه د مکفول له ګواهان په هغه ښارکې وی.کوم چې ده معین کړې وو.او په بل ښارکې د ګواهانو پیش کول مشکل وی.نو په بل ښارکې سپارلو سره د ګواهانو نه بغیر مخاصمه نشی کولې.اوهرکله چې په بل ښارکې مخاصمه نشی کولې.نو دده مقصد به هم نه حاصلیږی.اوهرکله چې د مکفول له مقصد حاصل نشو.نود کفیل،مکفول بنفسه په بل ښار کې سپارل به هم معتبر نه وی.بعض عالمان فرمائی.چه د امام صاحب اود صاحبینو رحمهم الله اختلاف د عصر او زما نې اختلاف دی.دحضرت امام صاحب رحمه الله زمانه د خیر زمانه وه.او په خلګ وکې صلاح او تقوی غالب وه.د هرښار حاکم به د خلیفه د حکم وړاندې د اطاعت سرکښته کولو.رشوت خوری هم زیاته نه وه.په دې وجه هرښار برابر وو.که په هرښارکې به ئې سپارلو.د مکفول له لپاره په هرښارکې ددغه ښار د قاضي په ذریعه خپل حق وصولول آسان وو.خود صاحبینو رحمهما الله په زمانه کې د خلګو حالات بدل شو.شر اوفساد غالب شو. خلګ رشوتونو اړخ ته مائل شو.په حاکمانوکې د خلیفه د اطاعت جذبه کمه شوه.ښکار خبره ده.چه په داسې حالاتوکې واړه قاضیان برابر نشی کیدې.اوهرکله چې واړه قاضیان برابر نه دی.نوپه کوم ښارکې چې کفاله منعقد شوې ده.په هغه ښارکې سپارل مقید کول به مفیدوی.او هرکله چې مقید کول مفید دی.نود کوم ښارسره چې مکفول بنفسه مقید کړې شوې دې.په هغه ښارکې به سپارل معتبر وی.ددې نه په علاوه کې به سپارل معتبر نه وی.

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٢٨٩\٦) والبحر(٢١١\٦) ورالمحتار(٢٩٦\٤) نقلاً عن القول الراجح (٩١\٢)-

وَلَوْ سَلَّمَهُ فِي السِّجْنِ او که کفیل مکفول بنفسه په قید خانه کي اوسپارلو وَقَدْ حَبَسَهُ غَيْرُ الطَّالِبِ په داسي حال کي چې د مکفول له نه علاوه سپارلې دي لَا يَبْرَأُ نو بیا به هم بری نه وی لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْمُخَاصَمَةِ فِيهِ ځکه چې هغه په قید خانه کي په مخاصمه باندې قادر نه دی.

**تشریح:** - اوکه کفیل مکفول بنفسه په قید خانه کي اوسپاری، په داسي حال کي چې مکفول بنفسه د مکفول له نه علاوه د بل چا په وجه ګرفتار دی. نو په دې صورت کي به کفیل نه بری کیږی. ځکه چې په دې صورت کي مکفول له نه مکفول بنفسه سره په مخاصمه کاوه قادر نه دی. اوکه مکفول بنفسه دمکفول له په وجه ګرفتار دی. نو په دې صورت کي به کفیل بری وی.

### د مکفول به په مرګ سره د کفیل بالنفس د کفالت حکم

قَالَ فرمایي وَإِذَا مَاتَ الْمَكْفُولُ بِهِ بَرِئَ الْكَفِيلُ بِالنَّفْسِ مِنَ الْكَفَالَةِ وکله چې مکفول به مړشو. نو کفیل بالنفس د کفالې نه بری شو لِأَنَّهُ عَجَزَ عَنْ إِحْضَارِهِ ځکه چې کفیل دده د حاضرولو نه عاجز شو وَلِأَنَّهُ سَقَطَ الْحُضُورُ عَنِ الْأَصِيلِ او ځکه چې حاضریدل پخپله د مکفول به نه ساقط شو فَيَسْقُطُ الْإِحْضَارُ عَنِ الْكَفِيلِ نود کفیل څخه به هم دده حاضرول ساقط وی.

**حل اللغة:** ① الاحضار - حاضرول - ② سقط - ساقط شو - ③ الایفاء - ادا کول - ④ یصلح - صلاحیت لری

**تشریح:** - مسئله داده. که مکفول بنفسه یعنی مدعی علیه مړشو. نو کفیل به د کفالې بالنفس نه بری وی. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی. د امام شافعی رحمه الله یو روایت هم دادی. اوهم دغه ډول که کفیل مړشو. نو بیا به هم کفاله دده نه ساقط وی. دلیل ① دادی. چه د کفاله بالنفس بقاء، د کفیل او مکفول بنفسه دواړو په بقاء باندې موقوف ده. او ددې دواړو مرګ یا په دې دواړو کي د یوکس مرګ کفاله ختموی. ځکه چې کله مکفول بنفسه مړشو. نو کفیل دده د حاضرولو نه عاجز شو. اوهرکله چې کفیل د مکفول بنفسه سپارلو نه عاجز شی. نو کفاله ساقطیږی. ځکه به په دې صورت کي کفاله ساقطیږی. او کفیل به ددې نه بری کیږی. ② دوهم دلیل دادی. چه کله مکفول بنفسه مړشو. نو دده نه حاضریدل ساقط شو. او هرکله چې د مکفول بنفسه نه حاضریدل ساقط شو. نود کفیل څخه به دده حاضرول هم ساقطیږی. ځکه چې براءة د اصیل (مکفول بنفسه) براءة د کفیل واجبوی.

وَكَذَا إِذَا مَاتَ الْكَفِيلُ او هم دغه ډول که کفیل مړ شو لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ قَادِرًا عَلَى تَسْلِيمِ الْمَكْفُولِ بِنَفْسِهِ ځکه چې هغه د مکفول بنفسه په سپارلو باندې قادر پاتې نشو وَمَالُهُ لَا يَصْلُحُ لِإِيفَاءِ هَذَا الْوَاجِبِ او دده مال ددې واجب ادا کاوه صلاحیت نه لری.

**تشریح:** - اوکه کفیل مړشو. نو چونکه دې د مکفول بنفسه په سپارلو باندې قادر پاتې نشو. بلکه عاجز شو. ځکه به دده نه کفاله ساقطیږی. او پاتې شو دا اعتراض، چه د کفیل ترکي څخه به هغه دین اداکولې شی. کوم چې د مکفول له په مکفول بنفسه باندې واجب دی. نود کفیل په مرګ سره کفاله ساقطیدل پکار نه وو؟ خواب: ددې خواب دادی. چه په کفاله بالنفس کي کفیل د مکفول بنفسه حاضرولو او سپارلو کفیل وی. د مال ادا کاوه کفیل نه وی. او مال ددې واجب یعنی د، احضار مکفول بنفسه، ادا کاوه نه اصالةً صلاحیت لری. او نه نیابةً صلاحیت لری. اصالةً ځکه صلاحیت نه لری. چه ده پخپل ځان باندې مال لازم کړې نه وو. بلکه د مکفول بنفسه حاضرول ئې لازم کړی وو. او نیابةً ځکه صلاحیت نه لری. چه مال د نفس نائب او قائم مقام نشی کیدلې.

بِخِلَافِ الْكَفِيلِ بِالْمَالِ په خلاف د کفیل بالمال وَلَوْ مَاتَ الْمَكْفُولُ لَهُ اوکه مکفول له مړ شو فَلِلْوَصِيِّ أَنْ يُطَالِبَ الْكَفِيلَ نو دده وصی ته دا حق دی. چه هغه د کفیل نه مطالبه اوکړی فَإِنْ لَمْ يَكُنْ اوکه وصی نه وی فَلِوَارِثِهِ نود هغه وارث ته اختیار دی لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْمَيِّتِ ځکه چې وارث د مړی قائم مقام وی.

**تشریح:** - ددې په خلاف کفیل بالمال دی. چه دده په مرګ سره کفالې مالی نه باطلیږی. ځکه چې د کفیل مال د نائب جوړیدلو صلاحیت لری. په دې وجه دده د ترکې نه د مکفول له حق اداکولې شی. او بیا د کفیل وارث د مکفول عنه



نه ددې رجوع کوی. په دې شرط چې دا کفاله د مکفول عنه په حکم سره منعقد شوې وی. او کفیل دده په حکم کفیل جوړشوې وی. اوکه مکفول له مړشو. نود مکفول له وصی ته داحق شته. چه دې د کفیل نه مطالبه اوکړی. اوکه د مکفول له وصی نه وی. نودده وارثانو ته به دا حق حاصل وی. ځکه چې په وصی او وارث دواړوکي هریو د مړی قائم مقام وی. نود مکفول له د مرګ نه روسته په دې دواړوکي به هریو ته علی الترتیب د مکفول له پشان کفیل نه د مطالبې حق حاصل وی.

### د کفیل بالنفس سپارلو سره د کفیل د بری کیدلو حکم

قَالَ فرمایي وَمَنْ كَفَلَ بِنَفْسِ آخَرَ اوکوم کس چې د بل د نفس کفیل شو وَلَمْ يَقُلْ إِذَا دَفَعْتُ إِلَيْكَ اودا ئې اونه وئیل چه کله زه تاته درکړم فَأَنَا بَرِيءٌ نو زه بری یم فَدَفَعَهُ إِلَيْهِ نو کفیل مکفول بنفسه، مکفول له ته اوسپارلو فَهُوَ بَرِيءٌ نو کفیل به بری وی لِأَنَّهُ مُوجِبُ التَّصَرُّفِ ځکه چې بری کیدل د تصرف موجب دی فَيَثْبُتُ بِدُونِ التَّنْصِيصِ عَلَيْهِ نو ددې د صراحت نه بغیر به بری کیدل ثابت شی.

**تشریح:** - صورت د مسئلې دادی. چه یوکس دبل د نفس حاضرولو کفیل شو. خو کفیل مکفول له ته مخکې داسې اونه وئیل. چه کله زه مکفول بنفسه تاته اوسپارم. نوزه به بری یم. نوکفیل، مکفول بنفسه مکفول له ته حواله کړو. نوکفیل به بری وی. ځکه د کفاله بالنفس موجب دادی. چه کله کفیل مکفول بنفسه سپاری. نودې د کفالې نه بری کیږی. او دلته کي د کفیل د اړخه مکفول بنفسه سپارل اوموندې شو. په دې وجه د کفیل بری کیدل به هم موجودیږی. پاتې شوه داخبره چې کفیل د کفاله بالنفس موجب یعنی د،، براءت عند التسلیم،، صراحت نه دې کړې. یعنی دا ئې نه دی وئیلې. چه په سپارلو سره به زه بری یم؟ نو ددې ځواب دادی. چه د موجب ثابتیدلو لپاره ددې صراحت کول شرط نه دی. نو براءت کوم چې د کفاله بالنفس عندالتسلیم موجب دی. د صراحت کاوه څخه به بغیر ثابتیږی. لکه څنګه چې په اخستلو سره په مبیع کي د مشتری ملك ثابتیږی. ځکه چې ثبوت د ملك د عقدشراء موجب دی. اود موجب د ثبوت لپاره ددې صراحت کول شرط نه دی. یعنی د ملك ثابتیدلو لپاره دا وئیل شرط نه دی. که مادا شئ واخستلو. نو زه به ددې مالك یم. او لکه څنګه چې په نکاح صحیح سره دجماع حلالیدل ثابتیږی. ځکه چې د نکاح صحیح موجب د جماع حلالیدل دی. اود واجب ثابتیدلو لپاره ددې صراحت شرط نه دی. نوهم دغه ډول د کفیل بری کیدل هم چونکه عندالتسلیم د کفاله بالنفس موجب دی. په دې وجه مکفول بنفسه سپارلو سره به کفیل بری کیږی. که د بری کیدلو صراحت ئې کړې وی. او که صراحت ئې نه وی کړې.

وَلَا يُشْتَرَطُ قَبُولُ الطَّالِبِ التَّسْلِيمَ اود مکفول له سپارل قبلول شرط نه دی كَمَا فِي قَضَاءِ الدَّيْنِ لکه څنګه چې په پور اداکولو کي دی.

**حل اللغة:** التسلیم - سپارل - الدین - قرض - الخصومة - جګړه - الدفع - ورکول

**تشریح:** - صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چه کله کفیل، مکفول بنفسه مکفول له ته اوسپاری. نود مکفول له قبلول شرط نه دی. یعنی که مکفول له ئې قبول کړی. او که قبول نکړی. په دواړو صورتونوکي به کفیل بری کیږی. لکه مثلاً که قرضدار قرضخواه ته قرضه اوسپارله. اود قرضخواه لپاره د قبضه کاوه نه څه شئ رکاوټ هم نه وو. نو قرضدار به د پور نه بری کیږی. که قرضخواه په دې باندې قبضه اوکړی. او که قبضه اونکړی. دغه ډول د مکفول بنفسه په سپارلو سره کفیل بری کیږی. که مکفول له دا قبول کړی. اوکه قبول نکړی. دلیل دادی. چه د کفیل ذمه د هغه شئ په اداکاوه سره بری کیږی. چه د کوم شئ د اداکاوه ئې التزام کړې وو. اودا دده د اندیوالان یعنی د مکفول له په قبلولو باندې موقوف نه پاتې کیږی. ځکه که د مکفول له په قبلولو باندې موقوف پاتې شی. او مکفول له د قبلولو نه منع شی. نو په دې کي به د کفیل نقصان وی. او شریعت اسلام د هرکس ضرر او نقصان د امکان په اندازه لرې کوی. په دې وجه د کفیل ضرر لرې کاوه لپاره د مکفول له قبلولو باندې د کفیل براءت نه دې موقوف کړې شوې.

وَلَوْسَلَّمَ الْمَكْفُوْلُ بِهٖ نَفْسَهٗ مِنْ كَفَالَتِهٖ او كه مكفول به پخپله خپل خان دده د كفالت په وجه اوسپارلو صح .نو صحيح ده وَلِاَنَّهٗ مُطَالَبٌ بِالْخُصُوْمَةِ ځكه چې د مكفول به نه پخپله د خصومت مطالبه ده فَكَانَ لَهٗ وِلَايَةُ الدَّفْعِ نو ده ته به د خصومت دفع كاوه ولايت هم وي.

تشریح:- اوكه مكفول بنفسه خپل خان پخپله د كفيل د اړخه مكفول له ته اوسپارلو.نوداهم صحيح ده.يعنى په دې صورت كې به هم كفيل برى وى.ځكه چې مكفول بنفسه پخپله هم مطالب دې.يعنى مكفول له ته چې ځنګه د كفيل نه دمطالبې اجازت دې.دغه ډول د مكفول بنفسه نه هم د مطالبې اجازت دې.او هركله چې مكفول بنفسه پخپله د خصومت مطالب دې.نوده ته به د خصومت لرې كاوه ولايت هم حاصل وى.حاصل داچه په مكفول بنفسه باندې خپل خان سپارل په دوې (دوه) وجهو سره واجب دى.يو پخپله د خپل خان د طرفه،او دوهم د كفيل د طرفه.نو تركومه پورې چې مكفول بنفسه دا صراحت نه وى كړې.چه زه خپل خان دكفيل د اړخه سپارم.نودا سپارل به د كفيل د اړخه نشى شمارلې.او كفيل به نه برى كيږى.خو چې كله ده دا وضاحت اوكړو.چه زه خپل خان د كفيل د اړخه سپارم.نودا سپارل به د كفيل د اړخه وى.او كفيل به برى وى.

وَكَذَا اِذَا سَلَّمَهٗ اِلَيْهِ وَكِيْلُ الْكَفِيْلِ اَوْرَسُوْلُهٗ اوهم دغه ډول كله چې مكفول به د كفيل وكيل يا دده قاصد مكفول له ته اوسپارلو لِقِيَامِهِمَا مَقَامَهٗ ځكه چې دا دواړه د كفيل قائم مقام دى.

تشریح:- او كه كفيل بنفسه دكفيل وكيل يا دده قاصد مكفول له ته اوسپارلو.نو په دې صورت كې به هم كفيل برى وى.ځكه وكيل او قاصد دواړه د كفيل قائم مقام دى.اود قائم مقام فعل چونكه د اصل فعل شمارلې كيږى.په دې وجه ددوى سپارل په حقيقت كې د كفيل سپارل دى.اود كفيل په سپارلو سره چونكه كفيل برى كيږى.په دې د كفيل وكيل اود قاصد په سپارلو سره به هم كفيل برى كيږى.

## د كفيل بالنفس ضامن كيدلو كښې د ضمان مسئله

قَالَ فرمايي فَاِنْ تَكَفَّلَ بِنَفْسِهٖ اوكه يوكس د يونفس په دې شرط باندې كفيل شو عَلٰى اَنَّهٗ اِنْ لَمْ يُوَافِ بِهٖ اِلٰى وَقْتِ كَذَا كه په فلانى وخت باندې نې دې حاضر نكړو فَهُوَضَامِنٌ لِمَا عَلَيْهِ نودې دهغه ضامن دې.كوم څه چې په مكفول بنفسه باندې دى وَهُوَاَلْفٌ او هغه زر درهم دى فَلَمْ يُحْضِرْهُ اِلٰى ذٰلِكَ الْوَقْتِ بيا هغه په دغه وخت كې مكفول بنفسه رانه وستلو لَزِمَهٗ ضَمَانُ الْمَالِ نو په كفيل به د مال ضمان لازم وى.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې چه خالد د حامد لپاره د شاهد د اړخه كفيل بالنفس شو.يعنى خالد د شاهد حاضرولو كفيل شو.اوده دا اووئيل.كه مامكفول بنفسه يعنى شاهد فلانى وخت پورې حاضرنكړې شو.نو په مكفول بنفسه يعنى شاهد باندې چې څه واجب دى.يعنى زر روپۍ،ددې زه ضامن يم.په اتفاق سره كفيل يعنى خالد مكفول بنفسه يعنى شاهد هغه وخت پورې پيش نكړې شو.نو كفيل به مكفول له يعنى حامد لپاره د زر روپو ضامن وى.

لِاَنَّ الْكَفَالَةَ بِالْمَالِ مُعَلَّقَةٌ بِشَرْطِ عَدَمِ الْمُوَافَاةِ ځكه چې كفاله بالمال د مكفول بنفسه د نه حاضرولو په شرط باندې معلق ده وَهٰذَا التَّعْلِيْقُ صَحِيْحٌ اودا تعليق صحيح هم دې فَاِذَا وُجِدَ الشَّرْطُ نو كله چې شرط اوموندې شو. لَزِمَهُ الْمَالُ نو په كفيل به مال لازم وى.

تشریح:- دليل دادې چه په دې صورت كې كفاله بالمال د مكفول بنفسه يعنى د شاهد حاضرولو په شرط باندې معلق ده.اودا شرط، شرط متعارف دې او كفاله په متعارف شرط باندې معلق كول درست دى.نو هركله چې د كفالة بالمال نه حاضرولو شرط باندې معلق كول صحيح دى.او شرط اوموندې شو.نوپه كفيل به مال ضمان اداكول لازم وى.



وَلَا يَبْرَأُ عَنِ الْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ اود كفاله بالنفس څخه به برى نه وى لِاَنَّ وُجُوْبَ الْمَالِ عَلَيْهِ بِالْكَفَالَةِ ځكه چې د كفالې په وجه كفيل باندې مال لازميدل لَايُنَافِى الْكَفَالَةَ بِنَفْسِهٖ د كفاله بنفسه منافى نه دى اِذْكُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِلتَّوَثُّقِ ځكه چې په دواړو كې هر يو د اعتماد لپاره دې.

تشریح:- په ذكرشوې مسئله كې د كفالت بالمال نه برى شو خو ددې باوجود به د كفاله بالنفس نه نه برى كيږى.بلكه د مكفول بنفسه حاضرول به په ده باندې على حاله واجب وى.
دليل دادې.چه كفاله بالمال او كفاله بالنفس دواړو كې هيڅ منافات نشته.ځكه چې د دواړو مقصد يو دې.ځكه چې كفاله بالمال هم د مكفول له د اعتماد لپاره وى.او كفاله بالنفس هم د اعتماد لپاره وى. نو هركله چې په دواړو كې هيڅ منافات نشته.بلكه دواړه جمع كيداې شى.يعنى يوكس كفيل بالنفس او كفيل بالمال دواړه كيداې شى.نوكفاله بالمال به كفاله بالنفس نه باطلوى.او هركله چې د كفاله بالمال په وجه كفاله بالنفس باطل نشوه.نو كفيل په مال ضمان ادا كاوه باندې دكفاله بالنفس نه ځنګه برى كيداې شى؟

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعى رحمه الله فرمايي لَاتَصِحُّ هٰذِهِ الْكَفَالَةُ چې دا كفاله صحيح نه ده لِاَنَّهٗ تَعْلِيْقُ سَبَبِ وُجُوْبِ الْمَالِ بِالْخَطَرِ ځكه چې دا د وجوب مال سبب په امر مرتدد باندې معلق كول دى فَاَشْبَهَ الْبَيْعَ نودا د بيع مشابه شو.

تشریح:- په زيربحث مسئله كې امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه دا كفاله بالمال صحيح نه ده.
د حضرت امام شافعى رحمه الله دليل دادې.چه كفاله بالمال په شرط باندې معلق كول، د وجوب مال سبب په يو امر متردد باندې معلق كول دى.( دكفاله بالمال وجوب د مال سبب خوبنكاره دې.ځكه چې د كفاله بالمال په وجه كفيل باندې مال واجبيږى.او شرط امر مترددد ځكه دې.چه د شرط كيدل او نه كيدل دواړه محتمل دى) او كفاله بالمال د مال په لزوم كې د بيع مشابه دې.چه كفاله دمكفول عنه په حكم سره وى.اوكفيل د مكفول عنه نه د مال هغه مقدار واپس واخلى.كوم چې ده مكفول له ته اداكړې دې.او بيع په شرط باندې معلق كول جائز نه دى.مثلاً دا وئيل.كه ته كورته داخل شوې.نو ما دا شئ تا باندې په سل روپۍ باندې خرڅ كړو.او دوهم دا قبول كړو.نو كورته په داخليدو سره به بيع نه ثابتيږى.ځكه چې بيع هم دوجوب مال سبب دې.اود وجوب مال سبب په شرط يعنى په امر مرتدد باندې معلق كول جوارى ده.او جوارى حرام ده.په دې وجه بيع په شرط باندې معلق كول هم حرام دى.او هركله چې بيع په شرط باندې معلق كول حرام او ناجائز دى.نوكوم چې د بيع مشابه دې.يعنى كفاله بالمال.دا به هم په شرط باندې معلق كول حرام او ناجائز وى.اود متن په مسئله كې كفاله بالمال چونكه د مكفول بنفسه دنه حاضرولو په شرط باندې معلق دې.په دې وجه به دلته كې هم كفاله بالمال صحيح نه وى.

وَلَنَا او زمونږ دليل دادې اَنَّهٗ يُشْبِهُ الْبَيْعَ وَيُشْبِهُ النَّذْرَ چې دا د بيع مشابه هم دې.اود نذر مشابه هم دې مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ الْتِزَامٌ په دې حيثيت سره چې دا لازمول دى فَقُلْنَا لَايَصِحُّ تَعْلِيْقُهٗ بِمُطْلَقِ الشَّرْطِ نو مونږ اووئيل.چه دا په مطلق شرط باندې معلق كول صحيح نه دى كَهُبُوْبِ الرِّيْحِ وَنَحْوِهٖ لكه د هوا چليدل،او ددې پشان وَيَصِحُّ بِشَرْطٍ مُتَعَارَفٍ او په شرط متعارف باندې معلق كول صحيح دى عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ چې په دواړه مشابهتونو باندې عمل اوكړې شى وَالتَّعْلِيْقُ بِعَدَمِ الْمُوَافَاةِ مُتَعَارَفٌ اود عدم موافات شرط باندې معلق كول متعارف دى.

حل اللغة: ① يصح-صحيح كيږى-② الهبوب-هلوتل-③ الريح-باد-④ المتعارف-معلوم

تشریح:- زمونږ د اړخه په خواب كې عرض دى.چه كفاله بالمال صرف د بيع مشابه نه ده.بلكه انتهاءً د بيع مشابه ده.په دې شرط چې د مكفول عنه په حكم سره كفيل شوې وى.ځكه چې كفيل كله د مكفول عنه د مال هغه مقدار واپس اخلى.كوم چې ده(كفيل) دده د اړخه مكفول له ته وركړې دې.نودا به مبادلة المال بالمال وى.او عقدمعاوضه به وى.او كفاله بالمال ابتداءً د نذرمشابه ده.په دې طريقه چې كفيل په ابتداء كې تبرعاً خپل خان باندې يو غيرلازم شئ لازموې.لكه ځنګه چې نذركونكې خپل خان باندې يوغير لازم شئ لازموى.بهرحال حاصل دا شو چه كفاله بالمال ابتداءً د نذر مشابه ده.او انتهاءً د بيع مشابه ده.

اود شرط دوي (دوه) قسمونه دى. ① شرط متعارف، لكه د مكفول بنفسه حاضرولو شرط ② شرط غيرمتعارف، لكه د هواچليدل، د باران وريدل، په كور كي داخليدل.واضحه دي وي.چه بيع په هيڅ يوشرط معلق كول جائز نه دى.نه په شرط متعارف باندي،اونه په شرط غيرمتعارف باندي.او نذر د دواړو قسمونو په شرطونو باندي معلق كول جائز دى.نود كفاله بالمال بيع سره د مشابهت تقاضا داده.چه كفاله بالمال هيڅ شرط سره هم معلق كول جائز نه وي.او نذر سره د مشابهت تقاضا داده.چه دواړه قسمه شرطونو باندي معلق كول جائز وي.نو موږ په دي دواړو مشابهتونو باندي عمل اوكړو.او موږ اوونيل .چه د بيع د مشابهت په وجه شرط غير متعارف باندي كفاله بالمال معلق كول ناجائز دى.اود نذر د مشابهت په وجه په شرط متعارف باندي معلق كول جائز دى.اود مكفول بنفسه نه حاضرولو شرط چونكه شرط غيرمتعارف دي،په دي وجه كفاله بالمال په دي شرط باندي معلق كول جائز دى.اوهركله چي كفاله بالمال په دي شرط باندي معلق كول جائز دى.نو په دي صورت كي به كفاله بالمال جائز او صحيح وي.

## د مكفول عنه په مرګ باندي د كفيل د ضمان مسئله

قَالَ وَمَنْ كَفَلَ بِنَفْسِ رَجُلٍ اوكه يو كس د يوسړي كفيل بالنفس شو وَقَالَ اِنْ لَمْ يُوَافِ بِهٖ غَدًا فَعَلَيْهِ الْمَالُ او وي ونيل.كه صباله مي حاضر نكړو.نو په ده (ما) باندي مال واجب دي فَاِنْ مَاتَ الْمَكْفُوْلُ عَنْهُ نوكه مكفول عنه مړ شو ضَمِنَ الْمَالَ نو كفيل به د مكفول له لپاره د مال ضامن وي لِتَحَقُّقِ الشَّرْطِ وَهُوَ عَدَمُ الْمُوَافَاةِ خكه چي شرط يعني حاضرول موجود شو.

**تشريح**:- مسئله داده.كه يوكس د يوسړي كفيل بالنفس شو.اودا ني اوونيل.كه ما مكفول بنفسه صباله حاضر نكړو.نوستا كوم مال چي په مكفول بنفسه باندي دي.دا به زه اداكوم.بيا مكفول عنه يعني مكفول بنفسه مړشو.په كفيل باندي به د مكفول له لپاره د مال ضمان واجب وي.بيا كه داكفاله دمكفول بنفسه په حكم سره وي.نو كفيل به دا مال دده د وارثانو نه اخلي.دليل دادي.چه د مال د ضامن كيدلو شرط مكفول بنفسه نه حاضرول دى.اودا شرط موجود شو.خكه به په كفيل باندي ضمان واجب وي.

اشكال: دلته يو اشكال دي.هغه دا چي په ذكرشوي مسئله كي كفاله بالمال په كفاله بالنفس باندي مرتب ده.اود مكفول بنفسه په مرګ سره كفاله بالنفس ساقط شوه.نوكفاله بالمال كوم چي په دي مرتب ده.داهم باطليدل پكار وو.لكه كه مكفول بنفسه د حاضرولو ميعاد نه وړاندي مكفول له كفيل د كفاله بالنفس نه بري كړلو.نو كفيل به د كفاله بالمال نه هم بري كيږي.نوهم دغه ډول دلته كي هم چي كله مكفول بنفسه په مرګ سره دكفيل نه كفاله بالنفس ساقط شوه.نوكفاله بالمال هم ساقطيدل پكار وو.

خواب: ددي خواب دادي.چه ابراء يعني كفيل بري كول، د كفاله فسخ كاوه لپاره موضوع ده.او مرګ د كفاله فسخ كاوه لپاره موضوع نه دي.نود ابراء په وجه به كفاله من كل وجه نه فسخ كيږي.او اړتيا صرف د كفاله بالنفس د فسخ كاوه دي.د كفالي بالمال (ضرورت) نه دي.په دي طريقه چي كله مكفول بنفسه مړ شو.نوكفيل دده دحاضرولو نه عاجز شو.نو ددي عجز په وجه كفاله بالنفس فسخ او باطليږي. اود كفاله بالمال فسخ كاوه عدم اړتيا خكه دي.چه دمكفول بنفسه په مرګ سره دده د نه حاضرولو شرط اوموندي شو.او هر كله چي شرط موجود شو.نو دده د اړخه به مكفول له ته مال ادا كوي.او بيا به دده د وارثانو نه دده په مال متروكه كي وصول كوي.

## د كفيل بالنفس د نه حاضرولو په شرط سره د سلو دينارو دضمان مسئله

قَالَ (ابو الحسين قدوري ﷫) فرمايي وَمَنْ اِدَّعٰى عَلٰى اٰخَرَ مِائَةَ دِيْنَارٍ كه يوكس په بل باندي د سلو دينارو دعوه اوكړه بَيَّنَهَا اَوْلَمْ يُبَيِّنْهَا (او) ددي كره كهوټه ني بيان كړل.اوكه بيان ني نكړل حَتّٰى تَكَفَّلَ بِنَفْسِهٖ رَجُلٌ تردي چي



يو سړي دده كفيل بنفسه شو اوعَلٰى اَنَّهٗ اِنْ لَمْ يُوَافِ بِهٖ غَدًا په دي شرط كه دي ني صباله حاضرنكړو فَعَلَيْهِ الْمِائَةُ فَلَمْ يُوَافِ بِهٖ غَدًا فَعَلَيْهِ الْمِائَةُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ (١) نو په ده باندي سل دينار دي.نوده صباله هغه حاضر نكړي شو.نو په ده باندي د شيخينو ﷫ په نيز سل دينار دي.

**تشريح**:- صورت د مسئلي دادي.چه يوكس مثلاً خالد دوهم كس مثلاً حامد باندي د سلو دينارو دعوه اوكړله.اومدعي يعني قرضخواه خالد ددي دينارو صفت يعني ددي كره كيدل، يا ردي كيدل، يا متوسط كيدل بيان كړي وي.يا ني نه وي بيان كړي.په دواړه صورتونوكي كه څوك دريم سړي مثلاً واصف د قرضداري د اړخه د قرضخواه لپاره كفيل بنفسه شو.او وي ونيل.چه زه به صباله قردار حاضروم.كه صباله ما قرضدار يعني حامد مجلس ته حاضرنكړي شو.نو په ما باندي سل دينار دي.يعني ددي د ادا كاوه ذمه وار زه يم.خو صباله كفيل بنفسه يعني واصف مكفول بنفسه يعني حامد حاضرنكړي شو.نود شيخينو ﷫ په نيز به د شرط مطابق په كفيل يعني واصف باندي سل دينار لازم وي.امام احمد ﷫ هم ددي قائل دي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ ﷫ او امام محمد ﷫ فرمايي اِنْ لَمْ يُبَيِّنْهَا كه دائي بيان نكړل حَتّٰى تَكَفَّلَ بِهٖ رَجُلٌ تردي چي يو سړي دده كفيل شو ثُمَّ ادَّعٰى بَعْدَ ذٰلِكَ بيا ني كفالي نه روسته دعوه اوكړله لَمْ يُلْتَفَتْ اِلٰى دَعْوَاهُ نو دده دعوي اړخ ته به توجه نشي كولي لِاَنَّهٗ عَلَّقَ مَالًا مُطْلَقًا بِخَطَرٍ خكه چي ده مال مطلق يو امر مرتدد باندي معلق كړي دي اَلَا يُرٰى اَنَّهٗ لَمْ يَنْسُبْهُ اِلٰى مَا عَلَيْهِ آيا نه ګوري.چه كفيل دا دينار هغه اړخ ته منسوب نكړل.كوم چي په مكفول عنه باندي دي وَلَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ او په دي طريقه باندي كفاله ټيك نه وي وَاِنْ بَيَّنَهَا اګرچه د دينارو صفت بيان كړي.

**تشريح**:- په زيربحث مسئله كي امام محمد ﷫ فرمائيلي دي.كه مدعي يعني قرخواه خالد د نانيرو صفت يعني كره كيدل يا ردي (كهوټه) كيدل بيان نكړل.تردي چي يوسړي يعني واصف د قرضدار يعني د حامد حاضرولو كفيل شو.بيا د كفالي نه روسته مدعي يعني قرضخواه خالد ددي دنانيرو صفت يعني كره يا ردي كيدل بيان كړل.نو دده دعوي اړخ ته به التفات نشي كيدلي.امام شافعي ﷫ هم ددي قائل دي.

د امام محمد ﷫ رومبي دليل دادي.چه كفيل كوم مال د مكفول بنفسه په نه حاضرولو باندي معلق كړي دي.دا مال معلق دي.خكه چي كفيل سل دي دنانيرو اړخ ته نه دي منسوب كړي.كم چي په مكفول عنه يعني قرضدار باندي واجب دي.مكفول له يعني قرضخواه مخاطب جوړولو سره ني دا نه دي ونيلي.كه ما مكفول بنفسه يعني قرضدار صباله حاضرنكړي شو.نو په ما به سل دينار واجب وي.كوم چي ستا په قرضدار يعني مكفول بفسه باندي واجب دي.اوپه كوم شي ني چي معلق كړي دي.هغه امر متردد دي.يعني داسي امر دي.چه دا كيداي هم شي.او كيداي هم نشي.خكه چي شرط مكفول بنفسه نه حاضرول دي.نودا هم كيداي شي.چه كفيل مكفول بنفسه حاضرنكړي.اودا هم كيداي شي.چه حاضر ني كړي.حاصل دا شو.چه كفيل پخپله دي كفاله كي مال مطلق په امر متردد باندي معلق كړي دي.او په دي طريقه باندي كفاله صحيح نه وي.اګرچه مدعي يعني قرضخواه د د نانيرو صفت هغه دنانيرو اړخ ته نه دي منسوب كړي.كوم چي په مكفول بنفسه يعني په قرضدارباندي واجب دي.نو په دي كي چي څنګه دا احتمال دي.چه كفيل پخپل ځان باندي هغه دنانير لازم كړي دي.كوم چي په مكفول بنفسه يعني قرضدار باندي واجب دي.هلته كي دا احتمال هم دي.چه كفيل ابتداء د رشوت په طور خپل ځان باندي د سلو دنانير الزام خكه كړي دي.چه مكفول له د مكفول بنفسه يعني قرضدار نه في الحال مطالبه پريږدي.يعني كفيل د رشوت په طور مكفول له ته سل دنانير وركړل.چه مكفول له يعني قرضخواه مكفول بنفسه يعني قرضدار ته د يو مودي لپاره مهلت وركړي.او رشوت په طور چونكه پخپل ځان باندي مال لازمول صحيح نه دي.نودا كفاله بالمال هم صحيح نشوه.دا داسي هم ونيلي شي.چه كفيل خپل ځان باندي كوم مطلق مال لازم كړي دي.دا د

١) القول الراجح هو هذا قول الشيخين ﷫ كذا فى سكب الأنهر(١٢٩\٢) نقلاً عن القول الراجح (٩٢\٢)-

رشوت په طور هم كېداې شي.او هغه هم كېداې شي.كوم مال چې په مكفول بنفسه يعنى قرضدار باندې واجب وو.په ړومبی صورت يعنی د رشوت په صورت كي مال نه لازمېږی.او په دوهم صورت يعنی د ضامن كېدو په صورت كي مال لازمېږی.نو په كفيل باندې مال لازمولوكي شك شو.په داسې حال كي چې كفيل باندې د ورانديې مال لازم نه وو.اود شك په وجه غيرلازم مال نه لازمېږی.خكه به دلته هم په كفيل باندې مال نه لازمېږی.او هركله چې په كفيل باندې مال لازم نشو.نو كفاله بالمال به هم صحيح نه وی.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّهُ لَمْ تَصِحَّ الدَّعْوَىٰ مِنْ غَيْرِ بَيَانٍ** او خكه چې د صفت د بيان نه بغير دعوه صحيح نه ده **فَلَا يَجِبُ إِحْضَارُ النَّفْسِ** نود مكفول بنفسه حاضرول به واجب نه وی **وَإِذَا لَمْ يَجِبْ** او هركله چې حاضرول واجب نه دی **لَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ** نو كفاله بالنفس به هم صحيح نه وی **فَلَا تَصِحُّ بِالْمَالِ** او كفاله بالمال به هم صحيح نه وی **لِأَنَّهُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ** خكه چې كفاله بالمال په كفاله بالنفس باندې مبنی ده **بِخِلَافِ مَا إِذَا بَيَّنَ** په خلاف ددې كله چې د مال صفت بيان كړی. |

**تشريح:-** دامام محمد رحمه الله دوهم دليل دادې.چه په ذكرشوې مسئله كښې د سره كفاله بالنفس باطل ده.خكه چې د كفاله بالنفس صحيح كېدل په دې موقوف دی.چه د مدعی يعنی د قرضخواه د پور دعوه صحيح وی.اود پور دعوه هغه وخت صحيح كېږی.چه د پور د مال مقدار هم معلوم وی.او ددې صفت يعنی كره كوټه هم معلوم وی.او دلته مسئله دا فرض كړې شوې ده.چه مدعی يعنی قرضخواه د پور مال وصف كره يا كهوټه كېدل بيان كړی دی.اوكله چې ئې وصف بيان نكړو.نود وصف بيانولو نه بغير مدعی به مجهول شو.اود مدعی به مجهول كېدلو په صورت كي دعوه نه صحيح كېږی.نود قرضخواه د پور دعوه صحيح نشوه.اوهركله چې د قرضخواه دعوه صحيح نشوه.نو كفيل باندې قرضدار يعنی مكفول بنفسه حاضرول هم واجب نشو.اوهر كله چې په كفيل باندې د قرضدار يعنی د مكفول بنفسه حاضرول واجب نشو.نو كفاله بالنفس هم صحيح نشوه.اوهركله چې كفاله بالنفس صحيح نه ده.نو كفاله بالمال به هم صحيح نه وی.خكه چې كفاله بالمال په دې مسئله كي په كفاله بالنفس باندې مبنی ده.نو هركله چې مبنی عليه صحيح نه ده.نو مبنی به څنګه صحيح وی.ددې په خلاف كه قرضخواه د پور دعوه كاوه په وخت مدعی به يعنی د پور مال وصف هم بيان كړو.نو كفاله بالنفس به صحيح وی.او هركله چې كفاله بالنفس صحيح ده.نو كفاله بالمال كومه چې په دې مبنی ده.هغه به هم صحيح وی.

| |
|---|
| **وَلَهُمَا** اود شيخينو رحمهما الله دليل دادې **أَنَّ الْمَالَ ذُكِرَ مُعَرَّفًا** چې مال ده معرفه ذكر كړې دې **فَيَنْصَرِفُ إِلَىٰ مَا عَلَيْهِ** نودا به هغه ارخ ته واپس كېږی.كوم چې په مكفول عنه باندې واجب دی **وَالْعَادَةُ جَرَتْ بِالْإِجْمَالِ فِي الدَّعَاوَىٰ** په دعووكي د اجمالی بيان عادت جاری دې **فَتَصِحُّ الدَّعْوَىٰ عَلَىٰ اعْتِبَارِ الْبَيَانِ** نود بيان په اعتبار سره مجمل دعوه صحيح كېږی **فَإِذَا بَيَّنَ** نو كله چې ده بيان كړل **الْتَحَقَ الْبَيَانُ بِأَصْلِ الدَّعْوَىٰ** نواصل دعوې سره به لاحق كېږی **فَتَبَيَّنَ صِحَّةُ الْكَفَالَةِ الْأُولَىٰ** بيا د كفاله اولی صحيح كېدل ښكاره شو **فَيَتَرَتَّبُ عَلَيْهَا الثَّانِيَةُ** نو په دې به كفاله ثانيه هم مرتب كېږی. |

**حل اللغة:** ① الاجمال-ضد دتفصيل-② يترتب-مرتب كېږی-③ تبين-ښكارشو-④ التحق-ملحق شو

**تشريح:-** د شيخينو رحمهما الله ① دليل كوم چې د امام محمد رحمه الله د ړومبی دليل ځواب هم دې.دادې.چه د كفيل قول «على ان لم يواف به غداً فعليه المائة» كي «المائة» يعنی سل دينار معرف باللام دی.او لام هم عهدخارجی دې.چه ددې مدخول معين وی.نو ددې ،، المائة،، نه مراد هغه سل دينار دی.كوم چې په مكفول بنفسه يعنی په قرضدار باندې واجب دی.اوهركله چې د المائة نه مراد هغه سل دينار دی.نودا سل دينار د رشوت نه خارج شو.اوهر كله چې د رشوت احتمال پاتې نشو.نودا مال به د كفاله په وجه كفيل باندې لازم وی.او هر كله چې په كفيل باندې لازم شو.نودا كفاله به هم ټيك وی.② دوهم دليل كوم چې د امام محمد رحمه الله د دوهم دليل ځواب هم دې.دادې.چه هر كله قرضخواه په قرضدار باندې د سلو ديناررو دعوه اوكړله.او ددې وصف يعنی كره يا كوټه كېدل ئې بيان نكړل.ترديې چې دريم سړې د قرضدار د اړخه كفيل بنفسه شو.بيا مدعی يعنی قرضخواه د كفاله نه روسته د مال وصف بيان كړو.نو په دې كي هيڅ باك نشته.خكه د خلګو عادت دادې.چه دوی د قاضی د مجلس نه علاوه د مدعی عليه



جېلې لرې كاوه لپاره دعوې مجمل ساتی.او كله چې د قاضی په مجلس كي اړتيا پېښ شی.نو اوصاف وغيره بيانوی.او ددې واړه حالات ښكاره كوی.نود اوصاف په بيان باندې اعتماد كاوه سره مجمل دعوه صحيح كېږی.بيا چې كله مدعی يعنی قرضخواه د سل دينار وصف بيان كړو.نود وصف دا بيان اصل دعوې سره لاحق كېږی.يعنی داسې كېږی.ګويا ده د دعوې كاوه په وخت دمال وصف هم بيان كړې وو.او هركله چې د دعوه كاوه په وخت د مال وصف هم بيان كړې شو.نو مال يعنی مدعی به مجهول پاتې نشو.او هركله چې مدعی به مجهول پاتې نشو.نو دعوه د مال صحيح شوه.اوهركله چې د مال دعوه صحيح شوه.نو كفيل باندې مكفول بنفسه يعنی قرضدار حاضرول هم واجب شو.اوهر كله چې په كفيل باندې د مكفول بنفسه حاضرول واجب شو.نو كفاله بالنفس هم صحيح شوه.او هركله چې كفاله بالنفس صحيح شوه.نو كفاله بالمال كوم چې په دې باندې مرتب ده.هغه به هم صحيح وی.نود امام محمد رحمه الله دا فرمائيل.كه د دعوې په وخت قرضخواه د مال وصف بيان نكړو.نو كفاله بالمال او كفاله بالنفس به صحيح نه وی.غلط دی.

## په حدود او قصاص كښې دكفالت حكم

| |
|---|
| **قَالَ** (مصنف رحمه الله) فرمايي **وَلَا تَجُوزُ الْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** [1] اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په حدود او قصاص كي كفاله بالنفس جائز نه ده او ددې مطلب دادې.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز (په چاچه د حد يا قصاص دعوه اوكړې شوه) **مَعْنَاهُ: لَا يُجْبَرُ عَلَيْهَا عِنْدَهُ** هغه به په كفاله باندې نشی مجبوره كولې. |

**تشريح:-** ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په حدود اوقصاص كي كفاله بالنفس جائز نه ده.ددې عبارت نه د صاحب د قدروی رحمه الله مراد دادې.چه په كوم كس باندې د حد يا قصاص دعوه اوكړې شوه.كه دده نه مدعی د كفيل بنفسه مطالبه اوكړله.يعنی د يو داسې كفيل مطالبه ئې اوكړله.كوم چې په ده باندې د حد ثابتولو لپاره د قاضی په مجلس كي دده د حاضرولو ضامن وی.خوده د كفيل وركاوه نه انكار اوكړو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دې د كفيل په وركاوه باندې نشی مجبوره كولې.نود «لاتجوز الكفالة بالنفس» معنی به دا وی.چه «لايجوز اجبار الكفالة» يعنی په چاچه حد يا قصاص واجب دې.په كفيل وركاوه باندې دده مجبوره كول جائز نه دی.هم دا د امام احمد رحمه الله قول دې.او يو قول د امام شافعی رحمه الله دې.

| |
|---|
| **وَقَالَا** او صاحبين رحمهما الله فرمايي **يُجْبَرُ فِي حَدِّ الْقَذْفِ** چې په حد قذف كي (په كفيل وركاوه باندې) به مجبورولې شی **لِأَنَّ فِيهِ حَقَّ الْعَبْدِ** خكه چې په حد قذف كي د بنده حق دې. |

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه په كوم كس د حدقذف دعوه شوې ده.دې به په كفيل وركاوه باندې مجبوره كولې شی.يعنی كه دا كس د كفيل وركاوه نه انكار اوكړې.نو په كفيل بنفسه وركاوه باندې دده مجبوره كول جائز دی.هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې.اود امام شافعی رحمه الله يوقول هم دادې.

د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه په حد قذف كي د خپل ځان نه شرم لرې كاوه لپاره د مقذوف يعنی د بنده حق دې.اود حد مشروع كاوه نه مقصود خلګ د تهمت نه بندول او عالم د فساد نه خالی كول دی.خكه حد قذف د الله تعالی حق هم دې.بهرحال په حدقذف كي د بنده حق ثابت دې.هم دا وجه ده.چه د حدقذف لرې كاوه لپاره د مقذوف دعوه كول شرط دی.كه حدقذف د مقذوف يعنی د هغه سړی حق نه وې.په كوم چې تهمت لګولې شوې دې.نود حدقذف جاری كاوه لپاره به دده دعوه كول شرط نه وو.نود دعوه شرط كېدل ددې خبرې علامت دې.چه حدقذف د بنده يعنی د مقذوف حق دې.او مدعی يعنی مقذوف كله كله ددې خبرې محتاج وی.چه دې خپل ګواهان او مدعی عليه يعنی قاذف راجمع كړی.خو مدعی عليه قاذف خپل ځان پټوی.نوپه داسې صورت كي د

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی الدرالمنتقی (١٢٩\٢) والهندية (٢٥٨\٣) نقلاً عن القول الراجح (٩٢\٢)-

مدعی علیه یعنی د قاذف نه د کیل بنفسه اخستلو ارتیا راپیښیږي.چه دې د قاضی په مجلس کې د حاضرولو ضامن وي.نو ددې ارتیا په لحاظ سره د مدعی یعنی د مقذوف د شرم لرې کاوه حق ثابتولو لپاره قاذف په کفیل بنفسه ور کاوه باندې مجبوروليې شی.لکه څنګه چې په نورو حقوق کې مدعی علیه په کفیل بنفسه ور کاوه باندې مجبوروليې شی.

وَفِی الْقِصَاصِ او په قصاص کې به هم (په کفیل ور کاوه باندې مجبوره کولې شی) لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّ الْعَبْدِ فَيَلِيقُ بِهَا الْإِسْتِيثَاقُ كَمَا فِي التَّعْزِيرِ ځکه چې هغه خالص د بنده حق دې بِخِلَافِ الْحُدُودِ الْخَالِصَةِ لِلّٰهِ تَعَالَى په خلاف د هغه حدود کوم چې خالص د الله تعالی حق دې.

تشریح:- صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه په قصاص کې هم قاتل د کفیل بالنفس په ور کاوه باندې مجبوروليې شی.او علامه مرغینانی رحمه الله په دلیل کې فرمائیلی دی.چه قصاص خالص د بنده حق دې.حالانکه داسې نه ده.بلکه صحیح خبره داده.چه په قصاص کې د بنده حق هم موجود دې.اود الله تعالی حق هم موجود دې.البته د بنده حق غالب دې.قصاص د بنده حق ځکه دې.چه بنده یعنی د مقتول ولی که قصاص معاف کول اوغواړي.نو معاف کولې شی.اوکه دې د قاتل نه د قصاص عوض اخستل اوغواړي.نو عوض هم اخستې شی.نو بنده یعنی د مقتول ولی ته د قصاص معاف کاوه اود عوض اخستلو حق حاصلیدل،ددې خبرې دلیل دې.چه قصاص دده حق دې.اود الله تعالی حق ځکه دې.چه د قصاص په وجه عالم ته د فساد نه نجات ملاویږي.لکه چې قرآن پاك اعلان کوي. ﴿وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ﴾ او عالم ته د فساد نه نجات ورکول ښکاره دی.چه دا د الله تعالی حق کیداې شی.د بنده حق نشی کیدې.بهرحال په قصاص کې چونکه د بنده حق غالب دې.اود حقوق العباد ثابتولو لپاره مدعی علیه په کفیل بالنفس ور کاوه باندې مجبوروليې شی.ځکه په قصاص کې هم قاتل د کفیل بالنفس په ور کاوه مجبوروليې شی.ددې په خلاف هغه حدود کوم چې خالص د الله تعالی حق دې.لکه حد زنا او حد شُرب خمر،چه په چا باندې حد زنا یا حد شرب خمر واجب وي.دې به په کفیل بالنفس ور کاوه باندې مجبوروليې شی.اګرچه مدعی علیه یعنی په چاچه حد زنا یا حد شرب خمر واجب دې.که دې په خوشحالۍ سره کفیل ورکول اوغواړي.بیا به هم کفیل نشی اخستلې په حدزنا او حدشرب خمر کې کفیل بالنفس نه د زنا او شرب خمر باندې د شهادت قائمیدلونه روسته اخستې شی.اونه د شهات قائمیدلو نه وړاندې.د شهادت قائمیدلو نه وړاندې ځکه چې د شهادت قائمیدلو نه وړاندې صرف د دعوې په وجه مدعی علیه باندې د قاضی په مجلس کې حاضریدل واجب نه دی.نو کفیل باندې به دده حاضرول څنګه واجب وي.او هرکله چې په کفیل باندې مدعی علیه حاضرول واجب نه دی.نو کفاله بالنفس به څنګه واجب وي.اود شهادت قائمیدو نه روسته کفاله بالنفس ځکه جائز نه ده.چه د شهادت نه روسته اود ګواهانو د تعدیل نه وړاندې مدعی علیه (په چاچه د زنا یا دشرب خمر دعوه شوې ده) قید کولې شی.او په قید کاوه سره مضبوطی او وثیقه حاصلیږي. یعنی په قید کاوه سره د مدعی علیه خپل خان پواره اود قاضی په مجلس کې د نه حاضریدلو احتمال ختمیږي.اوهرکله چې دا احتمال پاتې نشو.نود کفاله هیڅ ارتیا نشته.ځکه چې د کفاله بالنفس مقصد هم دادې.چه کفیل مدعی علیه د قاضی په مجلس کې پیش کړي.اودا مقصد چونکه د کفاله نه بغیر نه حاصلیږي.ځکه به د کفاله هیڅ ارتیا هم نه وي.او هرکله چې په دې صورت کې کفاله بې ضرورته شوه.نو کفاله به هم جائز نه وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود امام ابو حنیفه رحمه الله دلیل دادې. قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {لَا كَفَالَةَ فِي حَدٍّ}[1] مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ د تفصیل نه بغیر ځکه چې په هیڅ حد کې کفالت نشته وَلِأَنَّ مَبْنَى الْكُلِّ عَلَى الدَّرْءِ او د ټولو حدودو بنا (بنیاد) چونکه په ساقطولو باندې دې فَلَا يَجِبُ فِيهَا الْإِسْتِيثَاقُ په دې وجه حدودو کې مضبوطالې کول به هم واجب نه وي.

(١) من حديث عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (١٢٧/٦) رقم ١١٤١٧)_



تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله ① دلیل ﴿لا كفالة في حدٍ.....﴾ حدیث دې.یعنی په هیڅ حد کې کفالة نشته.اودا حدیث مطلق دې.نه په دې کې د هغه حدود ذکر دې.کوم چې خالص د الله تعالی حق دی.اونه د هغه حقوق ذکر دې.په کوم کې چې د بنده حق وي.نو معلومه شوه.چه په حدودکې بلاتفصیل کفاله نشته.که حد قذف وي.او که قصاص یاحدود خالصة لله وي.او ددې حدیث په اړه کې د خصاف رائې داده.چه دا د حضرت شریح کلام دې.د رسول الله ﷺ کلام نه دې.خو صدرالشهید رحمه الله داحدیث رسول اکرم ﷺ پورې مرفوع کړې دې.② دوهم دلیل دادې.چه دټولو حدود بنا (بنیاد) په ساقطولو دې.دټولو حدود حکم دادې.چه دا د شهادت په وجه ساقط کړې شی.اود کومو څیزونو بنا (بنیاد) چې په ساقطولو وي.دابه په کفیل اخستلو باندې مضبوطول څنګه واجب وي.یعنی کوم حق چې په شبه سره ساقطیږي.په دې کې پخپله مضبوطی نشته.اوپه کوم حق کې چې پخپله مضبوطی نه وي.په هغې کې کفاله سره مضبوطی پیدا کول څنګه لازمیدې شی.نومعلومه شوه.چه په حدود کې د کفاله په ذریعه مضبوطی پیداکول واجب نه دی.

بِخِلَافِ سَائِرِ الْحُقُوقِ په خلاف د نورو حقونو لِأَنَّهَا لَا تَنْدَرِءُ بِالشُّبُهَاتِ ځکه چې دا د شبهاتو په وجه نه ساقطیږي فَيَلِيقُ بِهَا الْإِسْتِيثَاقُ نو ددې مضبوطول مناسب دی كَمَا فِي التَّعْزِيرِ لکه څنګه چې په تعذیر (سزا) کې کیږي.

حل اللغة: ① تندرئ-دفع کولې شی-② یلیق-مناسب دی-③ الاستیثاق-مضبوطول-④ سائر-ټول

تشریح:- ددې په خلاف نورحقوق دی.چه دا په شبهاتو سره نه ساقطیږي.نود کفاله په ذریعه دا مضبوطول مناسب دی.لکه څنګه چې په تعزیر کې دی.یعنی په کوم شئ کې چې تعزیر واجب وي.په هغې کې ﴿من وجب عليه التعزير﴾ په کفیل بالنفس ور کاوه باندې مجبوروليې شی.ځکه چې تعزیر صرف د بنده حق دې.دده په ساقطولو سره ساقطیږي.او په شهادت سره ثابتیږي.نود مالی حقوقو پشان تعزیرکې هم مدعی علیه په کفیل ور کاوه باندې مجبوروليې شی.

## په خوشحالۍ سره کفیل پیش کولوکښې د کفالت مسئله

وَلَوْ سَمَحَتْ نَفْسُهُ بِهِ اوکه (د مدعی علیه) زړه پخپله په کفیل ور کاوه باندې خوشحاله وي يَصِحُّ بِالْإِجْمَاعِ نو کفاله بالاجماع صحیح ده لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَرْتِيبُ مُوجَبِهِ عَلَيْهِ ځکه چې د کفاله موجب په عقدکفاله باندې مرتب کول ممکن دی لِأَنَّ تَسْلِيمَ النَّفْسِ فِيهَا وَاجِبٌ ځکه چې په حدودو کې د مدعی علیه خپل نفس سپارل واجب دی فَيُطَالَبُ بِهِ الْكَفِيلُ نو چونکه ددې مطالبه به د کفیل نه هم کیږي فَيَتَحَقَّقُ الضَّمُّ په دې وجه به د ملاوولو معنی متحقق شی.

حل اللغة: ① سمحت-خوشحاله شو-② یتحقق-ثابتیږي-③ الضم-یوځائې کیدل-④ یطلب-طلبوی

تشریح:- مسئله داده.چه په کومو حدودو (حدقذف) او قصاص کې چې د مدعی علیه د کفیل ورکولو په سلسله کې د مجبوره کاوه او په نه مجبوره کولوکې د امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله اختلاف دې په هغې کې که مدعی علیه په خوشحالۍ سره د زبردستۍ نه بغیر کفیل پیش کړي.نودا کفاله بالاجماع صحیح ده.

دلیل دادې.چه د کفاله موجب په عقدکفاله باندې مرتب کول ممکن دی.په دې طریقه چې د کفاله په موجب نفس مدعی علیه د قاضی په مجلس کې حاضرول دی.او په مدعی علیه باندې حدقذف او قصاص دواړوکې پخپله د قاضی په مجلس کې حاضریدل واجب دی.نو هرکله چې پخپله مدعی علیه باندې حاضری واجب ده.نود کفیل څخه به هم دده د حاضرولو مطالبه کولې شی.اوهرکله چې د کفیل نه د مدعی علیه د حاضرولو مطالبه کولې شی.او پخپله د مدعی علیه نه هم پخپله د حاضریدلو مطالبه کولې شی.نود کفاله معنی ﴿ضم الذمة إلى الذمة في المطالبة﴾ متحقق شوه.اوهرکله چې د کفاله معنی متحقق شوه.نودا کفاله به جائز هم وي.دا خیال ساتل پکار دی.چه هغه حقوق کوم چې خالص د الله تعالی حق دې.لکه حد زنا او حد شرب خمر، په دې کې که پخپله مدعی علیه هم د زبردستۍ نه بغیر پخپله رضا سره کفیل پیش کړي.بیا هم کفاله جائز نه ده.لکه څنګه چې په تیره شوې مسئله کې بیان شوی دی.

## په حدودو کښې د مدعی علیه قیدکولو مسئله

قَالَ فرمايي وَلَايُحْبَسُ فِيهَا او مدعی علیه به په حدودو کي نشي قید کولی حَتّٰى يَشْهَدَ شَاهِدَانِ مَسْتُورَانِ تردي چې داسې دوي (دوه) ګواهان چې ددوی حال پټ وی. ګواهی ورکړی أَوْشَاهِدٌعَدْلٌ يَعْرِفُهُ الْقَاضِي یا یو عادل ګواه چې قاضي دي پیژني. ګواهی ورکړی لِأَنَّ الْحَبْسَ لِلتُّهْمَةِ هَاهُنَا خکه چې په حدودو کي قید کول د تهمت په وجه وی وَالتُّهْمَةُ تَثْبُتُ بِأَحَدِ شَطْرَيِ الشَّهَادَةِ او تهمت د شهادت په دوي (دوه) جزوکي په یو سره ثابتیږی إِمَّا الْعَدَدُ أَوِ الْعَدَالَةُ که عدد وی. اوکه عدالت وی.

تشریح:- په «لایحبس فیها» کي د ضمیر مونث مرجع حدود دی. او په بعض نسخوکي «فیهما» دې. په دې صورت کي مرجع حدقذف او قصاص دې. صورت د مسئلې دادې. چه په حدودو کي یعنی په حد قذف او قصاص کي مدعی علیه یعنی ،، من وجب علیه الحد» به قاضی هغه وخت قیدکوی. چه کله سبب د حد صادریدلو باندې داسې دوي (دوه) ګواهان ګواهی ورکړی. چه ددوی حال پټ وی. یعنی نه ددوی عادل کیدل معلوم وی. اونه ددوی فاسد کیدل ښکاره وی. یایو داسې عادل سړې ګواهی ورکړی. چه دده د عادل کیدلو نه قاضی هم خبر وی. حاصل داچه ،، من وجب علیه الحد ،، قید کول په دوي (دوه) صورتونوکي دی. یا خو یو عادل سړې چې دده د عدالت نه قاضی خبر وی. ګواهی ورکړی. یا دوي (دوه) ګواهان چې ددوی عدالت یا فسق هیڅ ښکاره نه وی. ګواهی ورکړی. دلیل دادې. چه په حدود او قصاص کي قید کول نه وی. خکه چې د سبب ثابتول دحجت کامله محتاج دی. او تهمت د شهادت کامله په دوي (دوه) جزو کي په یو سره ثابتیږی. د شهادت کامله یوجزء عدد دې. یعنی د ګواهانو دوي (دوه) کیدل، او دوهم جزء عدالت دې. یعنی ګواه که یو وی. نو چې عادل وی. او تهمت د شهادت کامله په دوي (دوه) جزو کي په یوجزء سره خکه ثابتیږی. چه د تهمت په وجه قیدکول د فساد لرې کاوه لپاره وی. او فساد لرې نول د دیاناتو د نیبلې خنې دی. اود دیانات ثابتولو لپاره د شهادت کامله یو جزء کافی دی. که عدد وی. اوکه عدالت وی. په دې وجه د فساد د تهمت په وجه قید کاوه لپاره د شهادت کامله دوي (دوه) جزو کي د یوجزء کیدل ضروری دی.

بِخِلَافِ الْحَبْسِ فِي بَابِ الْأَمْوَالِ په خلاف د داسې قید کوم چې د مالونو په مقدمه کي وی لِأَنَّهُ أَقْصَى عُقُوبَةٍ فِيهِ خکه چې په مالونوکي آخری سزا قید ده فَلَايَثْبُتُ إِلَّا بِحُجَّةٍ كَامِلَةٍ نودا سزا به د حجت کامله نه بغیر نه ثابتیږی.

حل اللغة: ① الحبس-بندیز-② اقصی-اخری-③ الاستیثاق-مضبوطتیا-④ عقوبة-سزا

تشریح:- پاتې شو د مالونو په مقدمه کي قید کول. نو په دې کي د دوي (دوه) مستورالحال په ګواهئ یا د یو عادل په ګواهئ سره نشی قیدکولې. بلکه د مالی حق په سلسله کي د قید کاوه لپاره حجت کامله یعنی د دوي (دوه) عادل ګواهانو کیدل ضروری دی. دلیل او وجه د توپیر داده. چه د مالونو په مقدمه کي آخری او انتهائی سزا قید ده. او په حدود او قصاص کي آخری او انتهائی سزا قتل ده. یا قطع د ید ده. او یا کوړې دی. او په حدود او قصاص کي قید کول یو ډول سزا ده. کامل سزا نه ده. اودا خبره منلې شوې ده. چه د کاملې اوآخری سزا ثبوت په حجت کامله سره کیږی. په حجت ناقصه سره نه کیږی. په حجت ناقصه سره د معمولې درجې سزا ثابتیږی. آخری او انتهائی سزا نه ثابتیږی. نو په حدود او قصاص کي د مدعی علیه یعنی ،، من وجب علیه الحد ،، قیدکول چونکه کامل او آخری سزا نه ده. بلکه د معمولی درجې سزا ده. په دې وجه په حدود او قصاص کي د مدعی علیه د قید کاوه ثبوت په حجت ناقصه سره کیږی. اوحجت ناقصه د حجت کامل په دوي (دوه) جزو کي یوجزء دې. یعنی د دوي (دوه) مستورالحال ګواهانو ګواهی یا د یو عادل ګواهی وی. نو ثابته شوه. چه په حدود او قصاص کي مدعی علیه د تهمت په وجه قیدکول د حجت کامل دوي (دوه) جزو کي یوجزء ، یعنی د مستورالحال دوي (دوه) ګواهانو ګواهی، یاد یو عادل په ګواهئ سره ثابتیږی. اود مالونوپه مقدمه کي قید چونکه آخری او دکامل درجې سزا ده. په



دې وجه د مالونو په مقدمه کي د قید ثابتولو لپاره حجت کامله یعنی د دوي (دوه) عادل ګواهانو کیدل ضروری دی. د حجت ناقصه یعنی د دوي (دوه) مستورالحال ګواهانو ګواهی، یا د یوعادل سړی ګواهی به کافی نه وی.

اعتراض: دلته یو اعتراض کیداې شی. هغه داچه په حدود او قصاص کي مدعی یعنی د حد سبب ثابتولو نه وراندې صرف د تهمت په وجه مدعی علیه ګرفتارولې شی. حالانکه دا قیدکول د حدیث «ادرأوا الحدود بالشبهات» ،، حدود د شبهاتو په وجه لرې کړئ ،، معارض اومنافی دې. په دې وجه صرف د تهمت په وجه مدعی علیه قیدکول په هیڅ شان مناسب نه دی.

خواب: دلته کي د تهمت نه مراد اتهام د حاکم دې. یعنی که د شهادت کامله دوي (دوه) جزوکي یوجزء اوموندې شو. نو حاکم به مدعی علیه قید کوی. خکه که حاکم نې قید نکړی. نو خلګ به دې (قاضی) متهم کوی. چه د دین معامله سپک ګنړی. او بې توجهئ نه کار اخلی. اود حاکم د دین معامله سپک ګنړل، دده عدالت داغدار کوی. حالانکه حاکم له د هرداسې کارنه بچ کیدل ضروری دی. چه دا دده عدالت او دیانت مشتبه کوی. په دې وجه هرکله چې د شهادت کامله په دوي (دوه) جزوکي یو جزء اوموندې شی. نو حاکم به د خپل خان نه تهمت لرې کاوه لپاره مدعی علیه قید کوی. پاتې شو د نبی کریم ﷺ د تهمت په وجه قید کول نودا د جواز تعلیم ور کاوه لپاره وو. خکه چې نبی کریم ﷺ د نورو حاکمانو پشان په هغه خلګ وکي نه دې. چه دوی په ،، تهاون فی الدین ،، سره متهم کړې شی.

وَذَكَرَ فِي كِتَابِ أَدَبِ الْقَاضِي اود مبسوط په ادب القاضی کي ذکر دی أَنَّ عَلَى قَوْلِهِمَا لَايُحْبَسُ فِي [illegible] بِشَهَادَةِ الْوَاحِدِ چې د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې په حدود او قصاص کي د یو عادل ګواهئ باندې به هم نه قید کیږی. لِحُصُولِ الْاِسْتِيثَاقِ بِالْكَفَالَةِ خکه چې مضبوطوالې خو په کفاله سره حاصلیږی.

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه د مبسوط په ،، کتاب ادب القاضی ،، کي ذکر دی. چې د صاحبینو رحمهما الله د قول په بنا (بنیاد) باندې په حدود او قصاص کي د یوعادل سړی په ګواهئ باندې به هم نشی قید کولې. یعنی د شهادت کامله په دوي (دوه) جزوکي که یوجزء اوموندې شی. بیا به هم مدعی علیه یعنی ،، من وجب علیه الحد ،، نشی قید کولې. خکه چې هرکله ددوی په نیز په حدود او قصاص کي کفاله ثابت ده. او مدعی علیه په کفیل بالنفس ور کاوه باندې مجبوره کولې شی. نو ددې کفاله په وجه وثیقه او مضبوطی حاصل شوې ده. اوهرکله چې په کفاله سره مضبوطی حاصل شوه. نود مدعی علیه قید کاوه هیڅ ارتیا نشته. اود حضرت امام اعظم رحمه الله په نیز چونکه په حدود او قصاص کي مدعی علیه په کفیل بالنفس ور کاوه باندې نشی مجبوره کولې. په دې وجه ددوی په نیز مقدمه مضبوطولو لپاره به مدعی علیه قیدکولې شی.

## په خراج کښې د رهن اوکفالت حکم

قَالَ فرمايي وَالرَّهْنُ وَالْكَفَالَةُ جَائِزَانِ فِي الْخَرَاجِ چې په خراج کي رهن او کفاله دواړه جائز دی لِأَنَّهُ دَيْنٌ مُطَالَبٌ بِهِ مُمْكِنُ الْاِسْتِيفَاءِ خکه چې خراج یو داسې قرضه ده. چه ددې مطالبه کولې شی. (او) ددې وصولول ممکن دی فَيُمْكِنُ تَرْتِيبُ مُوجِبِ الْعَقْدِ عَلَيْهِ فِيهِمَا نو په رهن او کفاله دواړوکي د عقد موجب په دې باندې مرتب کول ممکن دی.

تشریح:- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی. چه په خراج کي رهن او کفاله دواړه جائز دی. یعنی که په یوذمی باندې خراج واجب وی. او دده د ارخه څوک کفیل شو. نوجائز دی. اوکه دده نې د خراج په عوض څه رهن ورکړو. نو هم جائز دې. کفاله خکه جائز ده. چه کفاله وائی. د دین په مطالبه کي یوه ذمه بلې ذمې سره ملاوول. اوخراج هم داسې دین دې. چه ددې د بندګانو د ارخه مطالبه کولې شی. تردې چې د خراج نه ادا کاوه په صورت کي ذمی قیدکولې شی. لکه څنګه چې د دین نه ادا کاوه په صورت کي مدیون او قرضدار قید کول جائز دی. او لکه څنګه چې د دین نه ادا کاوه په صورت کي مدیون پسې داسې لګیدلې شی. چه دائن دده نه نه جداکیږی. دغه ډول د خراج نه ادا کاوه په صورت کي هم ذمی پسې لګیدلې شی. نو ثابته شوه. چه خراج یو داسې دین دې. چه ددې د بندګانو د ارخه

مطالبه کولې شي.اوداسې دين چې د بندګانو د اړخه ددې مطالبه کولې شي.د هغې کفالة جائز وي.نود خراج کفاله به هم جائز وي.او رهن ځکه جائز دې.چه رهن د دين وصولولو وثيقه (مضبوطي) وي.يعنې د رهن په صورت کې د دين وصولولو اعتماد او بهروسه کيږي.نوهم دغه ډول په رهن سره د خراج وصولول ممکن دي.په دې وجه لکه څنګه چې د دين په صورت کې رهن جائز دې.دغه ډول په خراج کې هم رهن ايخول جائز دي.علامه مرغيناني ﷫ دا خبره مختصراً داسې فرمائيلې ده.چه خراج داسې دين دې.چه دبندګانو د اړخه ددې مطالبه کولې شي.او په رهن سره ددې وصولول هم ممکن دي.په دې وجه په کفاله او رهن کې د عقدکفاله او عقدرهن موجب په خراج باندې مرتب کول ممکن دي.او هرکله چې په کفاله اورهن کې ددې موجب په خراج باندې مرتب کول ممکن دي.نو په خراج کې به کفاله او رهن دواړه جائز وي.

## د دوې (دوه) کسانو کفيل بالنفس جوړولو حکم

📖 قَالَ وَمَنْ أَخَذَ مِنْ رَجُلٍ كَفِيلًا بِنَفْسِهِ فرماني.اوکه يوکس د يوسړي نه کفيل بالنفس واخستلو ثُمَّ ذَهَبَ فَأَخَذَ مِنْهُ كَفِيلًا آخَرَ بيا لاړو.اود هغه نه ئې بل کفيل واخستلو فَهُمَا كَفِيلَانِ نودا دواړه به دوې (دوه) کفيلان وي لِأَنَّ مُوجَبَهُ الْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ ځکه چې د عقدکفاله موجب د مطالبې التزام دې وَهِيَ مُتَعَدِّدَةٌ وَالْمَقْصُودُ التَّوَثُّقُ، او مطالبه متعدد ده.اود عقدکفاله مقصود مضبوطي حاصلول دي وَبِالثَّانِيَةِ يَزْدَادُ التَّوَثُّقُ او په دويمه کفاله سره به مضبوطي زياتيږي فَلَا يَتَنَافَيَانِ نو په دواړه کفالتونوکې به منافات نه وي.

حل اللغة: ① متعددة-ګڼر-② يزداد-زياتيږي-③ التوثيق-مضبوطتيا-④ يتنافيان-دواړه د يوبل سره منافي شوي وي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه دسړي د طرفه که متعدد (ګڼې) کفيلان شوي وي.اوکه بلا ناغه کفيلان شو.نو صحيح ده.که په يووخت کفيل واخستلو.يعنې شاهد د قرضدار حامد حاضرولو کفيل شو.بيا خالد قرضخواه خپل قرضدار حامد نه يوکفيل بالنفس واصف واخستلو.يعنې واصف هم د حامد قرضدار حاصلولو کفيل شو.نودا دواړه يعنې شاهد او واصف دوې (دوه) کفيلان شو.او هريو به د مکفول بنفسه (حامد) حاضرولو جلا کفيل وي.تردې چې يوکفيل مکفول بنفسه حاضرکړو.نودې به برى شي.خو دوهم کفيل به نه برى کيږي.دليل دادې.چه د عقدکفاله موجب خپل ځان باندې مطالبه لازمول دي.او مطالبه متعدد ده.چه د کفيل او مکفول بنفسه دواړو نه مطالبه کولې شي.د کفيل نه د حاضرولو.اود مکفول بنفسه نه د حاضريدلو.اود عقدکفاله مشروع کيدلو نه مقصود مضبوطي حاصلول دي.اودا ښکاره ده.چه په دويمې کفاله سره به مضبوطي زياتيږي.کميږي به نه.نو هرکله چې دويمه کفاله په مضبوطوالي کې اضافه کوي.نو په دې دواړو کفالاتوکې به منافات نه وي.او هرکله چې په دواړو کفالاتوکې منافات نشته.نو دواړه کفالتونه به جائز وي.

## د کفالت بالمال حکم

وَأَمَّا الْكَفَالَةُ بِالْمَالِ فَجَائِزَةٌ او پاتې شوه کفاله بالمال،نودا هم جائز ده مَعْلُومًا كَانَ الْمَكْفُولُ بِهِ أَوْ مَجْهُولًا که مکفول به معلوم وي.اوکه مجهول وي إِذَا كَانَ دَيْنًا صَحِيحًا په دې شرط چې دين صحيح وي مِثْلُ أَنْ يَقُولَ تَكَفَّلْتُ عَنْهُ بِأَلْفٍ مثلاً دا اوواني.چه زه ده د اړخه د يو زرکفيل شوم أَوْ بِمَا لَكَ عَلَيْهِ يا دهغه مال کوم چې ستا په ده باندې دي أَوْ بِمَا يُدْرِكُكَ فِي هَذَا الْبَيْعِ يا دهغه مال کوم چې په تا باندې په دې بيع کې راشي.

تشريح:- فاضل مصنف ﷫ وړاندې د کفاله دوې (دوه) قسمونه بيان کړي وو.① کفاله بالنفس ② کفاله بالمال، د کفاله بالنفس ټولو احکامونه د فراغت نه روسته اوس کفاله بالمال ذکرکوي.ارشاد فرمائي.چه کفاله بالمال جائز ده.مکفول به مال د مقدار په اعتبار سره معلوم وي.او که مجهول وي.په دې شرط چې دين صحيح وي.د امام مالك او امام احمد ﷫ هم دا قول دې.اود امام شافعي ﷫ قديم قول هم دادې.



لِأَنَّ مَبْنَى الْكَفَالَةِ عَلَى التَّوَسُّعِ ځکه چې د کفالې بنا (بنياد) په توسع باندې دې فَيُتَحَمَّلُ فِيهَا الْجَهَالَةُ په دې وجه په دې کې جهالت برداشت کيږي وَعَلَى الْكَفَالَةِ بِالدَّرَكِ إِجْمَاعٌ او په کفاله بالدرك باندې اجماع ده وَكَفَى بِهِ حُجَّةً اود اجماع حجت کيدل کافي دي.

حل اللغة: التوسع-فراخي-② الشجة-د سر زخم-③ السراية-خوريدل-④ الكتفاء-کافي کيدل

تشريح:- دليل د الله تعالى دا قول دې ﴿وَلِمَن جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ﴾ حضرت يوسف ﷺ اعلان کړې وو.چه کوم کس ورك شوې کټورې راوړي.د هغه لپاره به د يو اوښ بوجه غله وي.او زه ددې کفيل يم.دلته ما مکفول به ﴿وَلِمَن جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ﴾ (د غلې نه بارشوې اوښ دې) اود اوښ بوجه د اوښ په مختلف کيدو سره بدليږي.يعنې که اوښ کمزورې وي.نو په ده چې کومه غله بارکولې شي.دا به کمه وي.اوکه طاقتور وي.نو په ده به غله په زيات مقدار کې بارکيږي.نو حضرت يوسف ﷺ چې د کومې غلې کفيل شوې دې.هغه غله د مقدار په اعتبار سره مجهول ده.او قرآن پاك که يوحکم د تيرشوي امتونو بيان کړي.او په دې باندې څه نکير اونکړي.نودا زموږ لپاره هم حجت وي.په دې وجه به دا آيت د مکفول به د مقدار مجهول کيدلو باوجود، د کفاله په جواز باندې زموږ لپاره حجت وي.② دوهم دليل دادې.چه نبي کريم ﷺ فرمائيلي دي. ﴿الزعيم غارم﴾ کفيل ضامن دې.په دې کې عموم دې.نه د مکفول به معلوميدل ذکر دي.اونه مجهول کيدل ذکر دي.په دې وجه به کفاله په دواړه صورتونوکې ټيک وي.③ دريم دليل کوم چې علامه مرغيناني ﷫ بيان کړې دې.چه د کفاله بنا (بنياد) په توسع باندې ده.ځکه چې کفاله ابتداءً تبرع او خالص احسان دې.اود کوم شي بنا (بنياد) چې په توسع باندې وي.هغه معمولي جهالت برداشت کوي.ځکه به کفاله هم د مکفول به معمولي جهالت برداشت کوي.④ څلورم دليل دادې.چه د کفاله بالدرك په جواز باندې دټولو اتفاق او اجماع ده.حالانکه په کفاله بالدرك کې دټولو نه زيات جهالت وي.ځکه کله چې کفيل مشتري ته اووئيل.که يوکس په مبيع باندې د استحقاق دعوه اوکړه.اودا ئې واخستلو.نو ستا د ثمن ضامن زه يم.په دې کې خو اول ضمان مجهول دې.ځکه که مبيع مستحق شو.نو ضامن به وي.ګنې ضامن به نه وي.دويمه دامعلومه نه ده.چه پوره مبيع به مستحق کيږي.او که يوه برخه به مستحق وي.بهرحال ضمان بالدرك او په کفاله بالدرك کې دمکفول به مجهول کيدلو باوجود ددې په جواز باندې د ټولو امامانو اجماع ده.او اجماع يو شرعي حجت دې.نو کفاله بالدرك چې په دې کې د ټولو نه زيات جهالت دې.هرکله چې دا جائز دې.نو نور صورتونه چې په دې کې کم جهالت دې.په درجه اولى به جائز وي.

وَصَارَ اوداسې شوه كَمَا إِذَا كَفَلَ بِالشَّجَّةِ لکه چې يو کس د سر د زخم کفالت اوکړو صَحَّتِ الْكَفَالَةُ نو کفاله صحيح ده وَإِنِ احْتَمَلَتِ السِّرَايَةَ وَالِاقْتِصَارَ اګرچه د سرايت (خوريدلو) او اکتفاء (کميدلو) دواړو احتمال دې.

تشريح:- اودا داسې شوه.لکه مثلاً يوکس د سر د زخم کفيل شو.په دې شرط چې زخم په خطاء سره وي.قصداً نه وي.مثلاً واصف د عارف په سر کې په خطاء سره زخم اوکړو.او شاهد د واصف د اړخه عارف لپاره کفيل شو.شاهد عارف ته اووئيل.چه ددې زخم په وجه د ديت کوم مال ماته حاصل شي.زه د هغې کفيل يم.اوس په دې کې دوې (دوه) احتماله دي.يو داچه زخم خورشي.او ددې زخم په وجه د عارف انتقال اوشي.دوهم احتمال دادې.چه زخم خور نشي.او عارف بچ شي.په ړومبي احتمال کې به په جارح يعنې واصف باندې د نفس ديت واجب وي.او په دوهم احتمال کې به صرف د زخم تاوان او ارش واجب وي.نو معلومه شوه.چه د زخم په وجه کوم مال واجب وي.هغه مجهول دې.يعنې پوره ديت هم کيداې شي.اود زخم تاوان هم کيداې شي.خو ددې باوجود ددې کفاله جائز ده.دغه ډول به په نورو قرضونو کې هم د مکفول به جهالت سره کفاله جائز وي.موږ د خطاء زخم لګولو قيد ځکه ذکرکړې دې.که په قصد سره زخم لګولې شوې وي.اودا خور شو.او زخم هم په تيره آله سره شوې وي.نو په دې صورت کې به په زخم لګونکي باندې قصاص واجب وي.اود قصاص په کفاله کې د امام صاحب او صاحبينو ﷭ اختلاف دې.چه ددې تفصيل وړاندې تيرشوې دې.

وَشَرَطَ او شرط دادي أَنْ يَكُونَ دَيْنًا صَحِيحًا چې دين صحيح وى وَمُرَادُهُ أَنْ لَا يَكُونَ بَدَلَ الْكِتَابَةِ او دده مراد دا دي چه بدل كتابت نه وى وَسَيَأْتِيكَ فِي مَوْضِعِهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او ددې بيان به پخپله موقع باندې انشاءالله ستاسو مخې ته راشي.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي چه شيخ ابوالحسن قدوري رحمه الله د كفالة بالمال د جواز شرط دا بيان كړې دې چه دين صحيح وى. اود دين صحيح مطلب دادې چه بدل كتابت نه وى. خكه چې صحيح دين هغه ته وائي چه هغې د بنده ګانو د اړخه د خپل حق وصولولو لپاره مطالبه اوكړې شي. اود مديون نه دا نشي ساقطولې. مګر دا چې مديون دا اداكړي. يا دائن مديون برى كړي. او معاف ئې كړي. او پاتې شو بدل كتابت نودا ددې دواړو صورتونو نه بغير هم ساقطيدې شي. په دې طريقه چې مكاتب د بدل كتابت ادا كاوه نه وړاندې خپل خان عاجز كړي. په دې صورت كې نه د مكاتب د اړخه ادائيګي اوشوه. اونه د مولا د اړخه برى كيدل اومونډې شو. خو ددې باوجود بدل كتابت ساقط شو. په دې وجه بدل كتابت ته دين صحيح نه وائي. ددې پوره تفصيل به انشاءالله په ،، كتاب المكاتب ،، كې بيانيږي.

## د مكفول له د مال مطالبه كول

قَالَ وَالْمَكْفُولُ لَهُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ طَالَبَ الَّذِي عَلَيْهِ الْأَصْلُ اومكفول له ته اختيار دې. كه غواړي د هغه سړي نه دې مطالبه اوكړي. په چا چې اصل قرضه ده وَإِنْ شَاءَ طَالَبَ كَفِيلَهُ او كه غواړي. د كفيل نه دې مطالبه اوكړي لِأَنَّ الْكَفَالَةَ ضَمُّ الذِّمَّةِ إِلَى الذِّمَّةِ فِي الْمُطَالَبَةِ خكه كفالة نوم دې په مطالبه كې د يوې ذمې بلې ذمې سره د ملاوولو وَذَلِكَ يَقْتَضِي قِيَامَ الْأَوَّلِ اودا د ړومبى د موجود كيدلو تقاضا كوى لَا الْبَرَاءَةَ عَنْهُ ددې نه د برى كيدلو نه كوى.

حل اللغة: ① الخيار-اختيار-ضم-يوځائې كيدل-يقتضى-تقاضاكوى-البراءة-برى كيدل

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه په كفالة بالمال كې مكفول له ته اختيار وى. چه دې د پور مطالبه د اصيل يعني مكفول عنه نه اوكړي. ياد كفيل نه اوكړي. يا په يووخت دواړو نه اوكړي. دليل دادې. چه كفالة په مطالبه كې د يوې ذمې بلې ذمې سره د ملاوولو نوم دې. يعني د كفيل ذمه اصيل يعني د مكفول عنه ذمه سره ملاويږي. اود كفيل ذمه د اصيل ذمې سره ملاوول ددې خبرې تقاضا كوى. چې ړومبئ ذمه يعني د اصل ذمه پاتې شي. او ددې خبرې تقاضا نه كوى. چه د اصيل ذمه د مطالبې نه برى شي. خكه كه د اصيل ذمه د مطالبې نه برى شي. نو ضم يعني يوه ذمه د بلې ذمې سره ملاوول به نه متحقق كيږي. اوهركله چې د يوې ذمې بلې ذمې سره ملاوول متحقق نشو. نوكفالة به هم متحقق نه وى. حالانكه مسئله د كفالة په صورت كې فرض شوې ده. نو ثابته شوه. چه د كفالة موجب يعني «ضم الذمة إلى الذمة في المطالبة» داصيل په ذمه موجود پاتې كيدلو تقاضاكوى. دده د ذمې برى كيدو تقاضا نه كوى.

إِلَّا إِذَا شَرَطَ فِيهِ الْبَرَاءَةَ خوكله چې په دې كې د براءت شرط كړې شوې وى فَحِينَئِذٍ تَنْعَقِدُ حَوَالَةً اعْتِبَارًا لِلْمَعْنَى نو دغه وخت به د معانو په اعتبار سره حواله منعقد كيږي. كَمَا أَنَّ الْحَوَالَةَ بِشَرْطِ أَنْ لَا يَبْرَأَ بِهَا الْمُحِيلُ تَكُونُ كَفَالَةً لكه څنګه چې حواله په دې شرط سره چې حواله كونكې برى نه وى. كفالة وى.

تشريح:- خوكه په كفالة كې د اصيل يعني د مكفول عنه د برى كيدو شرط لګولې شوې وى. يعني په كفالة كې مكفول عنه دا شرط كړې وى. چه زما ذمه به برى وى. يا كفيل په دې شرط سره كفالة كړې وى. چه د مكفول عنه ذمه برى ده. اومكفول عنه دا منظور كړې وى. نو په داسې صورت كې بلاشبه د مكفول عنه ذمه د مطالبې نه برى كيږي. خودا به كفالة نه وى. بلكه په لفظ د كفالة سره به حواله منعقد وى. يعني په نوم اګرچه دا كفالة ده. خو په حقيقت كې حواله ده. او وجه داده. چه كفالة اوحواله د عقود د قبيلې څخې دى. اوپه عقود كې د معانو اعتباركيږي. د الفاظو اعتبار نه كيږي. اود مطالبه نه د اصيل برى كيدل دحواله په معنى كې دى. د كفالة په معنى كې نه دى. خكه به كفالة د اصيل يعني د مكفول عنه د مطالبې نه د برى كيدو په شرط سره به حواله وى. لكه حواله



په دې شرط سره چې اصيل يعني حواله كونكې به برى نه وى. نودا لفظا اګرچه حواله ده. خو په حقيقت كې كفالة ده. خكه چې د مطالبه نه د اصيل نه برى كيدل د كفالة په معنى كې دى. د حواله په معنى كې نه دى او په عقودكې چونكه معانى معتبر وى. الفاظ معتبر نه وى په دې وجه د معانو اعتبار كاوه سره حواله په دې شرط سره چې كفيل به برى نه وى. كفالة ده.

❀ په حواله او كفالة كې د توپير حاصل دا دې چې په حواله اوكفالة كې توپير دادې چه په كفالة كې اصيل او كفيل دواړه ذمه دار وى. او په حواله كې اصيل د ذمه دارئ نه برى كيږي. او محتال عليه ذمه دار وى. نوكه په كفالة كې د اصيل براءت شرط وى. نودا حواله ده. اوكه په كفالة كې د اصيل نه برى كيدل شرط وى. نودا كفالة ده.

## د يونه د مطالبې كولونه روسته د دوهم نه د مطالبې حكم

وَلَوْ طَالَبَ أَحَدَهُمَا لَهُ اوكه مكفول له په دې دواړوكې د يونه مطالبه اوكړله أَنْ يُطَالِبَ الْآخَرَ وَلَهُ نو دده لپاره د دوهم نه هم د مطالبې كاوه اختيار دې أَنْ يُطَالِبَهُمَا او ده ته دا اختيار هم دې چه د دواړو نه مطالبه اوكړي لِأَنَّ مُقْتَضَاهُ الضَّمُّ خكه چې د كفالې مقتضى ملاوول دى.

حل اللغة: ① المقتضى-تقاضى كونكې-② يطالب-مطالبه كوى-③ التضمين-ضامن جوړول-④ التمليك-مالك جوړول

تشريح:- مسئله داده. كه مكفول له د كفيل او اصيل يعني مكفول عنه كې ديوكس نه د پور مطالبه اوكړله. نو ده ته د دوهم نه هم د مطالبې اختيار شته. خكه چې د يونه مطالبه كول د دوهم نه د مطالبه كاوه اختيار نه ساقطوى. بلكه مكفول له ته په يو وخت د كفيل او اصيل دواړو نه د مطالبه كاوه اختيار حاصل دې. خكه چې د عقدكفالة موجب يوه ذمه بلې ذمې سره ملاوول دى. اود دواړو نه په يو وخت مطالبه كاوه كې دا معنى متحقق كيږي. په دې وجه د دواړو نه په يو وخت مطالبه كولوكې هيڅ باك نشته. خوكه د يوسړي چا څه مال غصب كړو. بيا ددې غاصب نه بل كس غصب كړو. اودا مال د غاصب الغاصب سره هلاك شو. نو اوس مالك يعني مغصوب منه ته اختيار دې. چه دې د غاصب نه تاوان واخلي. ياد غاصب الغاصب نه تاوان واخلي.

بِخِلَافِ الْمَالِكِ په خلاف د مالك إِذَا اخْتَارَ تَضْمِينَ أَحَدِ الْغَاصِبَيْنِ كله چې ده په دوې (دوه) غاصبانوكې د يو نه ضمان اخستل اختيار كړل لِأَنَّ اخْتِيَارَهُ أَحَدَهُمَا يَتَضَمَّنُ التَّمْلِيكَ مِنْهُ خكه چې د مالك په دوې (دوه) غاصبانوكې يو اختيارول، دده په ملك كې ور كاوه ته متضمن دې فَلَا يُمْكِنُهُ التَّمْلِيكُ مِنَ الثَّانِي نود مالك لپاره به دوهم غاصب مالك جوړول ممكن نه وى أَمَّا الْمُطَالَبَةُ بِالْكَفَالَةِ پاتې شوه د كفالې په وجه مطالبه كول لَا تَتَضَمَّنُ التَّمْلِيكَ نودا مالك جوړولو ته متضمن نه دى فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو توپير واضح شو.

تشريح:- البته دومره خبره ضرور ده. كه مالك د غاصب نه تاوان واخستلو. نو غاصب الغاصب ته به د غاصب نه د رجوع كاوه اختيار نه وى. بهرحال مالك يعني مغصوب منه د قاضي په قضاء يا خپل منځ كې په رضامندئ سره د احدالغاصبين نه ضمان اخستل اختيار كړل. نود بل څخه به د ضمان د مطالبې اختيار نه وى. خكه چې هركله د قاضي په قضاء يا خپل منځ كې په رضامندئ سره يوضامن جوړكړې شو. نو ګويا مغصوب منه يعني مالك دې ددې مال مالك جوړكړې دې. او هركله چې مالك يوغاصب د خپل مغصوبه مال مالك كړو. نو اوس به ده ته د دوهم غاصب مالك كاوه اجازت نه وى. خكه چې دا خبره محال ده. چه دوې (دوه) سړي په زمانه واحده كې د شئ واحد پوره پوره مالك وى. يعني په دواړوكې هريو د پوره شئ مالك وى. دا خبره ناممكن ده. او پاتې شوه د كفالة په وجه مطالبه كول، نودا مالك جوړولو ته متضمن نه دې. يعني كه مكفول له د كفيل نه مطالبه اوكړله. نو ددې دا معنى نه ده. چه ده خپل اصل مال د كفيل په ملكيت كې وركول اختيار كړل. بلكه هغه خو په اصيل يعني په قرضدار باندې دې. اود كفيل نه صرف د ذمه دارئ مطالبه ده. نوهركله چې داخبره ده. نود اصيل نه هم مطالبه كولې شي. په دې تقرير سره د كفالة، اود مالك احدالغاصبين ضامن جوړولوكې توپير واضح شو.

**مشروط سره د كفالت معلق كولو حكم**

**قَالَ** فرمايي **وَيَجُوزُ تَعْلِيقُ الْكَفَالَةِ بِالشُّرُوطِ** او كفاله په شرطونو باندې معلق كول جائز دى **مِثْلُ أَنْ يَقُولَ مَا بَايَعْتَ فُلَانًا فَعَلَيَّ** مثلاً داسې اووائي. كه تا د فلاني سړي سره اخستل خرڅول اوكړل **أَوْ مَا ذَابَ لَكَ عَلَيْهِ** اوكوم څه چې ستا په فلاني سړي باندې راوزوتل. هغه په ما دى **فَعَلَيَّ** نو هغه په ما دى **أَوْ مَا غَصَبَكَ فَعَلَيَّ** يا فلاني چې كوم څه ستا لپاره غصب كړل. هغه په ما دى. **وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى** او اصل په دې اړه كې دالله تعالى دا قول دې. ،، **وَلِمَنْ جَاءَ بِهِ** اوكوم كس چې دا لوخي (پيمانه) راوړي **حِمْلُ بَعِيرٍ** هغه لپاره د يو اوښ بار غله ده **وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ** او زه ددې كفيل (ذمه وار) يم **وَالْإِجْمَاعُ مُنْعَقِدٌ عَلَى صِحَّةِ ضَمَانِ الدَّرَكِ** اود ضمان بالدرك صحيح كيدلو باندې اجماع منعقد ده

**حل اللغة:** ① **الحمل**-بار- ② **بعير**-اوښ- ③ **زعيم**-ذمه وار- ④ **ملائم**-مناسب

**تشريح:**- ابو الحسين قدوري ﷫ فرمائي. چه كفاله په شرط باندې معلق كول جائز دى. مثلاً دائې اووئيل. كه تا د فلاني سړى نه اخستل خرڅول اوكړل. نو زه ددې ذمه واريم. يا ئې دا اووئيل. چه كوم څه ستا په دغې ذمه وار يم. يعنى كه ستا په ده څه واجب شو. نوزه ددې ذمه دار يم. ياڼې دا اووئيل. چه فلاني سړى ستا څه مال غصب كړو. نو ددې كفيل زه يم. او په دې اړه كې اصل د الله تعالى قول ﴿وَلِمَنْ جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ﴾ دې. يعنى كوم كس چې د بادشاه كټورې راوړي. دده لپاره د يواوښ بوجه غله ده. او زه ددې كفيل يم. ددې آيت نه دوه خبرې معلومې شوې. ① يوه خودا چې يو اوښ غله چې ددې مقدار مجهول دې. اوكم و زيات كيداې شى. ددې كفاله جائز ده. ② دوهم داچه كفاله معلق ده. يعنى كه كوم كس دا كټورې راوړي. نو زه به دده لپاره كفيل يم. اوكه رانې نوړي. نو زه دده لپاره كفيل نه يم. ددې آيت نه معلومه شوه. چه مكفول به كه مجهول وي. نو بيا هم كفاله جائز ده. اوكه كفاله په شرط باندې معلق كړې شوه. بيا هم جائز ده.

**ثُمَّ الْأَصْلُ** بيا قاعده داده **أَنَّهُ يَصِحُّ تَعْلِيقُهَا بِشَرْطٍ مُلَائِمٍ لَهَا** چې كفاله په داسې شرط باندې معلق كول صحيح دى. كوم چې د كفالې د شرط مناسب وي **مِثْلُ أَنْ يَكُونَ شَرْطًا لِوُجُوبِ الْحَقِّ** مثلاً د حق واجب كيدلو لپاره شرط وي **كَقَوْلِهِ إِذَا اسْتُحِقَّ الْمَبِيعُ** لكه دده قول چې كله مبيع مستحق شى. ياد حق وصولولو ممكن كيدلو شرط وي **أَوْ لِإِمْكَانِ الِاسْتِيفَاءِ مِثْلُ قَوْلِهِ إِذَا قَدِمَ زَيْدٌ** مثلاً دده قول چې كله زيد راشي **وَهُوَ مَكْفُولٌ عَنْهُ** حالانكه هم زيد مكفول عنه دې **أَوْ لِتَعَذُّرِ الِاسْتِيفَاءِ** ياد حق وصوليدلو د متعذر كيدلو شرط وى **مِثْلُ قَوْلِهِ إِذَا غَابَ عَنِ الْبَلْدَةِ** مثلاً دده قول چې كله هغه غائب وى **وَمَا ذُكِرَ مِنَ الشُّرُوطِ فِي مَعْنَى مَا ذَكَرْنَاهُ** او كوم شرطونه چې په مسئله كې ذكر دى. په هغه معنى كې دى. كوم چې موږ بيان كړل.

**تشريح:**- علامه مرغيناني ﷫ د ضابطې په طور فرمائيلى دى. چه كفاله په داسې شرط باندې معلق كول جائز دى. چه دا شرط كفالـه سره مناسب وى. مثلاً مدعى يعنى دمكفول له په مدعى عليه يعنى مكفول عنه باندې د حق واجبولو لپاره شرط وى. لكه د عقدبيع په وخت چا مشترى ته اووئيل. كه مبيع مستحق شو. يعنى كه يوكس په مبيع باندې خپل استحقاق ثابت كړو. اودا ئې واخستلو. نو زه ستا لپاره د ثمن كفيل يم. په دې مثال كې مشترى مكفول له دې. او بائع مكفول عنه دې. او شرط يعنى د مبيع مستحق كيدل د مشترى په بائع باندې د حق ثمن واجبولو لپاره دې. او يا داسې شرط وى. چه ددې نه حق وصولول ممكن وى. مثلاً يوكس اووئيل. كه زيد راغى. نو زه كفيل يم. حالانكه مكفول عنه زيد دې. په دې صورت كې د زيد نه د مكفول له حق وصولول ممكن دى. يا د زيد په وېيلو سره به كفيل د خپل اړخه ادا كوي. بيا به ئې د زيد نه وصول كوي. په دې صورت كې هم د مكفول له حق وصولول ممكن دى. نودا شرط هم د كفاله مناسب دې. او يا داسې شرط وى. چه د حق وصولول ناممكن جوړ كړي. يعنى كفاله ئې په داسې شرط باندې معلق كړله. چه مكفول له ته خپل حق وصولول ناممكن شى. مثلاً مكفول له ته دا اووائى. كه دا سړې يعنى مكفول عنه ددې ښار نه غائب شى. يا مړشي. او هيڅ مال پرې نږدى. نو زه ستا د حق كفيل يم. او ددې صورت دادې. چه په زيد باندې د بكر حق دې. او بكر كفيل اوغوښتلو. نو



خالد په دې شرط باندې كفالت اوكړو چه اوس ته خپل حق د زيد نه اوغواړه. البته كه زيد دې ښار نه چرته لاړلو. نو زه ستا د حق كفيل يم. نودا شرط هم د كفاله مناسب دې. حاصل دا شو. چه كفاله په داسې شرطونو باندې معلق كول جائز دى. كوم شرطونه چې د عقدكفاله مناسب وى. اود مسئلې لاندې چې كوم شرطونه ذكر شو. يعنى ﴿مَا بَايَعْتَ فُلَانًا فَعَلَيَّ﴾ وغيره دا واړه دكفاله مناسب دى. نو په دې شرطونو باندې كفاله معلق كول به جائز وى.

**فَأَمَّا لَا يَصِحُّ التَّعْلِيقُ بِمُجَرَّدِ الشَّرْطِ** او پاتې شو صرف په شرط باندې معلق كول نو دا صحيح نه دى **كَقَوْلِهِ إِنْ هَبَّتِ الرِّيحُ** لكه دده قول كه هوا اوچلى **أَوْ جَاءَ الْمَطَرُ** يا اوبه راشي **وَكَذَا إِذَا جَعَلَ وَاحِدًا مِنْهُمَا أَجَلًا** اوهم دغه ډول كه په دې دواړوكې ئې يو د كفالې ميعاد مقرر كړې وى **إِلَّا أَنَّهُ تَصِحُّ الْكَفَالَةُ** خودا چې كفاله صحيح شى **وَيَجِبُ الْمَالُ حَالًّا** او مال به في الحال واجب وى **لِأَنَّ الْكَفَالَةَ لَمَّا صَحَّ تَعْلِيقُهَا بِالشَّرْطِ** ځكه چې كله كفاله په شرط باندې معلق كول صحيح دى **لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ** نودا په شرط فاسد سره نه باطليږي **كَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ** لكه څنګه چې په طلاق او عتاق كې دى.

**حل اللغة:** ① **مجرد**-صرف- ② **المطر**-باران- ③ **البنية**-ګواهان- ④ **يتحقق**-ثابتيږي

**تشريح:**- اوكه كفاله ئې په داسې شرط باندې معلق كړله. كوم شرط چې دكفاله مناسب نه وى. بلكه صرف شرط وى. نو په داسې شرط باندې معلق كول جائز نه دى. مثلاً يوسړې اووئيل. كه هوا (سيلۍ) او چليده. نو زه كفيل يم. يا كه باران اوشو. نو زه كفيل يم. نو په دې شرطونو باندې كفاله معلق كول جائز نه دى. لكه د هوا چليدل، يا باران وريدل ئې د كفاله ميعاد مقرر كړو. مثلاً داسې ئې اووئيل. چه زه د سيلۍ چليدو يا د باران وريدلو پورې كفيل يم. نو په دې صورت كې به ميعاد باطل وى. او كفاله به صحيح وى. د كفالت مال به في الحال واجب وى. د دليل نه وړاندې دا په ذهن كې كينوئ. چه ددې دليل په عبارت كې د تعلق بالشرط نه مراد اجل دې. ځكه چې دليل د كفاله مؤجله ذكر كولې شي. دكفاله معلقه نه ذكركيږي. نو اوس به حاصل د دليل داوى. چه هر كله كفاله متعارف ميعاد سره مؤجل كول صحيح دى. نو په آجال فاسده سره به كفاله نه باطليږي. بلكه فاسد ميعادونه به پخپله باطليږي. لكه په طلاق او عتاق كې كه ميعاد مجهول ذكر كړې شو. مثلاً دائې اووئيل. چه ما خپل غلام آزاد كړو. يا ما خپلې ښځې ته طلاق وركړو. هغه وخته پورې چې حاجيان راشي. يا سيلۍ اوچلى. يا باران اووريږي. نودا ميعاد به پخپله باطليږي. او طلاق اوعتاق به في الحال واقع كيږي.

**د كفيل د ضامن كيدلو نه روسته د زر درهمو ثابتيدلو حكم**

**فَإِنْ قَالَ تَكَفَّلْتُ بِمَالِكَ عَلَيْهِ** نوكه كفيل اووئيل. چه كوم څه ستا په ده باندې دى ما د هغې كفالت اوكړو **فَقَامَتِ الْبَيِّنَةُ بِأَلْفٍ عَلَيْهِ ضَمِنَهُ الْكَفِيلُ** بيا ئې ګواهان قائم كړل. چه په ده باندې يو زر دى. نو كفيل به د يو زر ضامن وى **لِأَنَّ الثَّابِتَ بِالْبَيِّنَةِ** ځكه چې كوم شئ په بينه سره ثابت وى. هغه داسې دې **كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً** لكه چې په مشاهده سره ثابت وى **فَيَتَحَقَّقُ مَا عَلَيْهِ** نوكوم څه چې په مكفول عنه باندې دى **فَيَصِحُّ الضَّمَانُ بِهِ** په متحقق طور باندې به ددې ضمان صحيح وى.

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې. چه يوسړى بل كس ته اووئيل. چه كوم مال ستا په ده باندې دې. زه د هغې كفيل يم. يعنى مكفول به مجهول دې. خو ددې باوجود يو سړې كفيل شو. بيا د ګواهانو په ذريعه ثابته شوه. چه په مكفول عنه باندې د مكفول له زر درهم دى. نو كفيل به ددې زرو درهمو ضامن وى.

② دليل دادې. چه په ګواهانو سره كوم شئ ثابتيږي. هغه په مشاهده سره د ثابتولو پشان دې. اوكفيل كه ددې مقدار مشاهده كړې وه. كوم چې په مكفول عنه باندې واجب دې. او ددې كفيل شوې وو. نو په ده به هغه مقدار لازميدلو. كوم چې په مكفول عنه باندې دې. نوهم دغه شان چې كله په ګواهانو سره يو مقدار ثابت شو. نوددې مقدار كفيل كيدل به هم صحيح وى.

وَإِنْ لَمْ تَقُمِ الْبَيِّنَةُ اوكه ګواهان نې قائم نكړل فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْكَفِيلِ مَعَ يَمِينِهِ فِي مِقْدَارِ مَا يَعْتَرِفُ بِهِ كفيل قول به د هغه شي په مقدار كي د كوم چي هغه اقرار كوي.قسم سره به قبول وي لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ لِلزِّيَادَةِ نود ځكه چي هغه د زياتوالي منكر دي.

تشريح:- اوكه په مقدار باندې ګواهان قائم نشو.او مكفول له او كفيل د مقدار په سلسله كي اختلاف اوكړو.مثلاً مكفول له اووئيل.چه زما په ده باندې دوې (دوه) زره درهم دي.او كفيل اووئيل.چه نه بلكه زر درهم دي.نو په داسې صورت كي به د كفيل قول مع اليمين معتبر وي.ځكه چي كفيل خپل خان باندې د زياتوالي منكر دي.اود زياتوالي د مدعي سره د بينه نه موجودكيدلو په صورت كي چونكه د منكر قول مع اليمين معتبر وي.په دې وجه به دلته هم دمنكر يعني دكفيل قول معتبر وي.

فَإِنِ اعْتَرَفَ الْمَكْفُولُ عَنْهُ بِأَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ نوكه مكفول عنه ددې نه د زيات اقرار اوكړو لَمْ يُصَدَّقْ عَلَى كَفِيلِهِ نو په كفيل به دده د قول تصديق نشي كولې لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ عَلَى الْغَيْرِ ځكه چي دا په غير باندې اقرار دي وَلَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِ او مكفول عنه ته په كفيل باندې هيڅ ولايت حاصل نه دي وَيُصَدَّقُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ او دده د ذات په حق كي به تصديق كولاى شي لِوِلَايَتِهِ عَلَيْهَا ځكه چي مكفول عنه ته پخپل ذات باندې ولايت حاصل دي.

حل اللغة: ①الاعتراف-اقرار-②اكثر-زيات-③يصدق-تصديق كوي-④ولاية-اختيار

تشريح:- اوكه مكفول عنه دكفيل د اقرار مقدار نه د زياتي اعتراف اوكړو.نو په كفيل به دده د قول تصديق نشي كولې.يعني په كفيل به هغه مقدار واجب نه وي.دكوم چي مكفول عنه اقرار كوي.البته پخپله به د مكفول عنه د ذات په حق كي ددې تصديق كولې شي.د كفيل په حق كي به تصديق ځكه نه كيږي.چه د مكفول عنه دا اقرار په غير باندې اقرار دي.او په غير باندې اقرار كاوه سره په غير باندې هغه وخت لازميږي.چه كله اقرار كونكي ته په دې غير باندې ولايت حاصل وي.حالانكه مكفول عنه ته په كفيل باندې هيڅ ولايت حاصل نه دي.نو هركله چي مكفول عنه ته په كفيل باندې هيڅ ولايت حاصل نه دي.نود مكفول عنه د اقرار په وجه به په كفيل باندې هيڅ لازم نه وي.اود مكفول عنه په حق كي به پخپله دده تصديق ځكه كولې شي.چه مكفول عنه ته پخپل ذات باندې ولايت حاصل دي.نو مكفول له د زياتوالي مطالبه د مكفول عنه نه كولې شي.خود كفيل نه نشي كولې.

## د مكفول عنه د حكم او بغير د حكم نه د كفالت مسئله

قَالَ فرمايي وَتَجُوزُ الْكَفَالَةُ بِأَمْرِ الْمَكْفُولِ عَنْهُ او كفاله جائز كيږي.د مكفول عنه په حكم سره هم وَبِغَيْرِ أَمْرِهِ او دده دحكم نه بغير هم لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا ځكه چي زمونږ روايت كړې شوي حديث مطلق دي.

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه كفاله د مكفول عنه په حكم سره هم جائز ده.اودده دحكم نه بغير هم جائز ده.يعني كه مكفول عنه يوكس ته حكم اوكړو.چه ته زما د اړخه ضامن شه.يا زما د اړخه كفيل شه.نودا جائز دي.اوكه د حكم نه بغير يوكس كفيل شو.نوهم جائز دي.

دليل① د رسول الله ﷺ قول «الزعيم غارم...الحديث» دي.يعنى،،كفيل ضامن دي،،اودا عام دي.نو ددې حديث اطلاق او عموم ،،كفاله بامره،، او،،بغيرامره،، د دواړو په جواز باندې دلالت كوي.

وَلِأَنَّهُ الْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ او ځكه چي كفاله د مطالبي لازمولو نوم دي وَهُوَ تَصَرُّفٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ اودا پخپل حق كي يو تصرف دي وَفِيهِ نَفْعٌ لِلطَّالِبِ او په دې كي د مكفول له نفع ده وَلَا ضَرَرَ فِيهِ عَلَى الْمَطْلُوبِ بِثُبُوتِ الرُّجُوعِ اود رجوع ثابتيدلو په وجه د مكفول عنه په دې كي هيڅ نقصان نشته إِذْ هُوَ عِنْدَ أَمْرِهِ په دې وجه د رجوع حق د مكفول عنه د حكم په وخت وي وَقَدْ رَضِيَ بِهِ حالانكه هغه په دې باندې راضي شوې دي.

تشريح:- دوهم دليل دادي.چه كفاله خپل خان باندې د مطالبي لازمولو نوم دي.او پخپل خان باندې مطالبه لازمول د خپل ذات په حق كي تصرف دي.اود خپل ذات په حق كي چي كوم تصرف وي.هغه لازم وي.په دې شرط چي په دې تصرف سره غير ته ضرر نه رسيږي.او دلته كي د متصرف يعنى د كفيل غير، مكفول له او مكفول عنه دي.



اود كفيل په تصرف سره دوى دواړو ته هيڅ ضرر نه رسيږي.بلكه د مكفول له په دې كي سراسر نفع ده.په دې طريقه چي د كفالة نه وړاندې مكفول له ته صرف د مكفول عنه نه د مطالبي اختيار وو.اود كفالة نه روسته د مكفول عنه نه علاوه د كفيل نه هم د مطالبي اختيار حاصل شوې دي.او په دې كي د مكفول له نفع بيكاره ده.اوپه كفالة سره د مكفول عنه هم څه ضرر نشته.ځكه چي مكفول عنه به كفيل ته حكم كړې وي.يا به ني كفيل ته حكم نه وي كړې.كه مكفول عنه كفيل ته حكم نه وي كړې.نود كفيل د دين ادا كاوه نه روسته د مكفول عنه نه د رجوع كاوه اختيار نه وي.اوهركله چي په دې صورت كي كفيل ته د مكفول عنه نه د رجوع كاوه شرعاً هيڅ اختيار نشته.نو په دې صورت كي د مكفول عنه څه نقصان هم نشته.اوكه مكفول عنه كفيل ته حكم كړې وي.نوپه دې صورت كي د دين ادا كاوه نه روسته اګرچه كفيل ته د مكفول عنه د رجوع كاوه اختيار دي.خود حكم كاوه په وجه مكفول عنه په دې باندې راضي شوې دي.اوپه كوم ضرر چي انسان راضي شي هغه ضرر نه شمارلې كيږي.په دې وجه به په دې صورت كي هم مكفول عنه ته هيڅ ضررنه لاحق كيږي.نو ثابته شوه.چه كفالة پخپلو دواړه قسمونو ، يعني بأمره او بغيرأمره سره جائز ده.

## د مكفول عنه په حكم سره د كفيل كفالت كول

فَإِنْ كَفَلَ بِأَمْرِهِ نوكه كفيل د مكفول عنه په حكم سره كفالت اوكړو رَجَعَ بِمَا أَدَّى عَلَيْهِ نو كفيل چي كوم څه ادا كړل.هغه به د مكفول عنه نه واپس اخلي لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنَهُ بِأَمْرِهِ ځكه چي كفيل د مكفول عنه په حكم سره د هغه قرضه اداكړې ده.

حل اللغة: ①الامر-حكم-②ادى-ادا كړو-③دين-قرض-④رجع-واپس واخستو

تشريح:- صورت د مسئلي دادي.كه كفيل د مكفول عنه په حكم سره كفالت كړې وي.نو كفيل چي كوم مال د مكفول له په مطالبه سره اداكوي.دې به د مكفول عنه هم دا مال واپس اخلي.په دې شرط چي دوې (دوه) خبرې اوموندې شي.① يوه داچه مكفول عنه داسې سړې وي.چه دده امر صحيح وي.نوكه مكفول عنه صبي محجور يا عبدمحجور وي.نوكفيل ته به د اداكړې شوى مال د مكفول عنه نه د واپس اخستلو اجازت نه وي.② دوهم داچه د امركونكي مكفول عنه كلام په لفظ ،،عنى،، باندې مشتمل وي.مثلاً داسې اووائي. «اكفل عني أضمن عني لفلان» يعنى ته زما د اړخه د فلاني لپاره كفيل شه.يا ضامن شه.كه مكفول عنه دا اووئيل.چه ته د فلاني لپاره ددې يو زر ضامن شه.كوم چي په ما باندې دي.نو په دې صورت كي به كفيل ته د ادا كاوه نه روسته د واپس اخستلو اجازت نه وي.بهرحل كه كفيل د مكفول عنه په حكم سره كفالت كړې وي.نوكفيل مال مكفول به ادا كاوه نه روسته د مكفول عنه نه واپس اخستې شي.

دليل دادي.چه كفيل د خپل غيرقرضه دده په حكم سره اداكړې ده.اوكوم كس چي دخپل غير قرضه دده په حكم سره اداكړي.چونكه ده ته د قرضدار نه د واپس اخستلو اختيار وي.په دې وجه كفيل بأمره ته د مكفول عنه د اړخه د ادا شوى مال دين واپس اختيار وي.

وَإِنْ كَفَلَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ اوكه كفيل د مكفول عنه د حكم نه بغير كفالت كړې دې لَمْ يَرْجِعْ بِمَا يُؤَدِّيهِ نو كوم څه چي اداكوي.دې هغه واپس نشي اخستې لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ بِأَدَائِهِ ځكه چي كفيل د هغه قرضه ادا كاوه كي احسان كونكې دي.

حل اللغة: ①يودي-ادا كوي-②متبرع-احسان كونكې-③ضمن-ضامن شو-④منزلة-پشان

تشريح:- اوكه كفيل د مكفول عنه د حكم نه بغير كفالت اوكړي.نوكفيل د مكفول عنه د اړخه څه هم اداكړي.ده ته به د مكفول عنه د واپس اخستلو اجازت نه وي.امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دي.او يو روايت د امام محمد رحمه الله دي.

دليل دادي.چي د كفاله بغيرأمره په صورت كي كفيل،د مكفول عنه د اړخه په قرضه اداكولوكي مكفول عنه باندې احسان او تبرع كونكې دي.او احسان كونكى ته دخپل احسان واپس اخستلو شرعاً اجازت نه وي.په دې

وجه دکفاله بغیرامره په صورت کي که کفیل د مکفول عنه د ارخه قرضه اداکړله.نو ددې واپس اخستلو اختیار به نه وي.

**وَقَوْلُهُ رَجَعَ بِمَا أَدّٰى مَعْنَاهُ** اود ماتن د قول،، رجع بما ادی،، معنی داده **إِذَا أَدّٰى مَا ضَمِنَهُ** چې کله ئې هغه شئ اداکړې وي.د کوم چې ضامن شوې دې **أَمَّا إِذَا أَدّٰى خِلَافَهُ** بهرحال کله چې ده د هغې نه خلاف ادا کړې وي **رَجَعَ بِمَا ضَمِنَ** نو هغه به واپس اخلی.د کوم چې ضامن شوې وو.

**تشریح:-** علامه مرغینانی ﷫ چې د ماتن دقول ﴿رجع بما أدى﴾ مطلب دادې.که کفیل هم هغه شئ اداکړی.دکوم شئ چې دې ضامن وو.بیا به خو کفیل د مکفول عنه نه د ﴿ما أدى﴾ رجوع کوی.خوکه دې د کوم شئ وو.د هغې نه علاوه بل شئ ئې اداکړو.نو په دې صورت کي کفیل ته د ﴿ما أدى﴾ واپس اخستلو اختیار نه وی.بلکه د کوم شئ چې ضامن شوې وو.هم هغه شئ واپس اخستلې شی.مثلاً په مکفول عنه باندې کهوټه دراهم پور دی.خوکفیل کره دراهم اداکړل.نو کفیل ته د مکفول عنه نه دکهوټه دراهمو واپس اخستلو اجازت دې.خو کره دراهمواخستلو اجازت نشته.یا په مکفول عنه باندې قرضه کره دراهم دی.خوکفیل مکفول له ته کهوټه دراهم ورکړل.او مکفول له پرواه اونکړه.اودا ئې هم قبول کړل.نو کفیل به د مکفول عنه کره دراهم وصول کوی.یا مثلاًمکفول عنه باندې یو زر درهم پور دی.او کفیل مکفول له ته سل دینار اداکړل.او مکفول له دا قبول هم کړل.نوکفیل به د مکفول عنه نه،، ماضمن،،یعنی یو زردرهم وصول کوی.او،، ما اوصی،، یعنی دسل دینار واپس اخستلو اختیار به نه وی.

**لِأَنَّهُ مَلَكَ الدَّيْنَ بِالْأَدَاءِ** ځکه چې کفیل په ادا کاوه سره د دین مالك شوې دې **فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الطَّالِبِ** نودې د مکفول له قائم مقام شو **كَمَا إِذَا مَلَكَهُ بِالْهِبَةِ أَوْ بِالْإِرْثِ** لکه کله چې دې د اصل پور د هبه یا میراث ( په ذریعه) سره مالك شوې وی **وَكَمَا إِذَا مَلَكَهُ الْمُحْتَالُ عَلَيْهِ** او لکه کله چې د محتال علیه مالك شو **بِمَا ذَكَرْنَا فِي الْحَوَالَةِ** د هغه امورو په وجه کوم چې مونږ په حواله کي ذکر کړی دی

**تشریح:-** ددې دلیل دادې.چه کفیل د مکفول عنه په قرضه ادا کاوه سره ددې پور مالك شوې دې.ګویا ده د مکفول له دا مال واخستلو.او هر کله چې کفیل د هغه پور مالك شو.کوم چې د مکفول عنه په ذمه ثابت دې.نو کفیل به د مکفول له قائم مقام وی.او مکفول له د مکفول عنه د هغه شئ مطالبه کولې شی.کوم چې په مکفول عنه باندې واجب دې.نوهم دغه ډول به د مکفول له قائم مقام یعنی کفیل ته هم دهغه شئ د مطالبې حق وی.کوم چې په مکفول عنه باندې ثابت دې.که ده هرڅه اداکړې وی.لکه څنګه چې کفیل د هبه یا میراث په ذریعه ددې مالك شوې وی.په دې طریقه چې مکفول له کفیل ته هغه قرضه هبه کړله.کومه چې د مکفول عنه په ذمه ثابته ده.نو کفیل به ددې پور مالك وی.اوده ته به هم ددې د اخستلو اختیار وی.دبل څه شئ اخستلو اختیار به نه وی.یا مکفول له وفات شی.او کفیل دده وارث شی.نوکفیل به د پور مالك وی.اودې به د مکفول له قائم مقام وی.اومکفول عنه ارخ ته به د،، ماضمن،،رجوع کوی. یعنی د هغه شئ رجوع به کوی.دکوم چې دې ضامن شوې وو.نولکه څنګه چې د هبه او میراث په صورت کي کفیل د پور مالك کیدلو په وجه د مکفول له قائم مقام جوړیږی.اود مکفول عنه نه هم هغه شئ اخستې شی.کوم چې په مکفول عنه باندې د مکفول له لپاره واجب وو.اودې ددې ضامن جوړشوې وو.دغه ډول کفیل د مکفول عنه د ارخه قرضه ادا کاوه نه روسته هم هغه واپس اخستې شی.د کوم چې دې ضامن شوې وو.

**بِخِلَافِ الْمَأْمُورِ بِقَضَاءِ الدَّيْنِ** په خلاف د پور ادا کاوه د مامور **حَيْثُ يَرْجِعُ بِمَا أَدّٰى** ،ځکه چې دې به هم هغه واپس اخلی.کوم چې ده اداکړی دی **لِأَنَّهُ لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ شَيْءٌ** ځکه چې په مامور باندې هیڅ شئ واجب نه وو **حَتّٰى يَمْلِكَ الدَّيْنَ بِالْأَدَاءِ** تردې چې دې په ادا کاوه سره د دین مالك شو.



**تشریح:-** دا عبارت د یوسوال مقدرځواب دې.سوال دادې. چې کفیل ته د مکفول عنه نه د پور واپس اخستلو اختیارهغه وخت وی.چه کله کفیل د مکفول عنه په حکم سره قرضه اداکړې وی.اودغه وخت به په کفیل بامره او مامور بقضاءالدین کي هیڅ توپیر نه وی.ځکه چې ماموربقضاءالدین هم د قرضدار په حکم سره پور اداکوی.اوکفیل بآمره هم د قرضدار یعنی د مکفول عنه په حکم سره پور ادا کوی.او ماموربقضاءالدین ته د قرضه ادا کاوه نه روسته د قرضدرا نه د،،ماادی،، واپس اخستلو اجازت وی.که،، ما ادی،،هم هغه وی.کوم چې په قرضدار باندې پور وو.او که ددې نه علاوه وی.نوهم دغه ډول کفیل ته هم د،، ما ادی،، واپس اخستلو اختیار پکاردې.که،، ما ادی،،هم هغه وی.دکوم چې ضامن شوې وو.اوکه ددې نه علاوه وی حالانکه تاسو فرمائیلی دی.که،، ما ادی،، د،، ماضمن،، خلاف وی.نو کفیل ماضمن واپس اخستې شی.ده ته د،، مادی،،واپس اخستلواختیار نه وی؟

ځواب*ددې ځواب دادې.چه مامور بقضاءالدین باندې هیڅ شئ واجب نه دې.بکله ده پخپله خوشئ سره د احسان په طور دا کارمنظورکړې دې.نو ماموربقضاءالدین په قرضه ادا کاوه سره د قرضه نه مالك کیږی.اوهرکله چې ماموربقضاءالدین د قرضه مالك نشو.نودې د طالب یعنی د قرضخواه قائم مقام هم نشو.اوهرکله چې د قرضخواه قائم مقام نشو.نوڅه چې په قرضدار واجب وو.ددې د اخستلو اجازت به هم نه وی.بلکه کوم څه چې ده اداکړی دی.هغه واپس اخستې شی.او پاتې شو کفیل بامره،نودې د کفاله په وجه پخپل ځان باندې د پور مال اداکول لازموی.اوهرکله چې په کفیل باندې د پور مال اداکول لازم دی.نوکفیل به ددې پور ادا کاوه نه روسته ددې پور مالك وی.اوچه د پور مالك شو.نود مکفول عنه یعنی د قرضخواه قائم مقام به وی.لکه څنګه چې مکفول له ته هم ددې شئ د مطالبې حق دی.کوم چې په قرضدار یعنی د مکفول عنه په ذمه ثابت دې.دغه ډول کفیل ته هم دمکفول عنه نه د هغه شئ اخستلو اختیار دې.کوم چې په قرضدار یعنی مکفول عنه باندې واجب دې.او کفیل ددې ضامن شوې دی.د،، مادی،، وغیره دبل شئ اخستلو اختیار به نه وی.حاصل داچه کفیل بامره او په ماموربقضاءالدین کي ډیر لوئې توپیر دې.اوفرق سره قیاس ټیك نه وی.لهذا کفیل بآمره به په مامور بقضاءالدین باندې قیاس کول ټیك نه وی.

**وَبِخِلَافِ مَا** په خلاف ددې **إِذَا صَالَحَ الْكَفِيلُ الطَّالِبَ عَنِ الْأَلْفِ عَلٰى خَمْسِمِائَةٍ** کله چې کفیل د مکفول عنه نه د یو زر په سلسله کي په پنځه سوه باندې صلح اوکړله. **لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ** ځکه چې دا ساقطول دی. **فَصَارَ** نودا داسې شوه **كَمَا إِذَا أَبْرَأَ الْكَفِيلَ** لکه چې مکفول له کفیل بری کړې وی.

**حل اللغة:** ①صالح-صلح اوکړه-②الف-زر روپۍ-③اسقاط-ساقطول-④ابرء-بری کړو

**تشریح:-** علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.که د پور رقم زر درهم وی.خوکفیل د مکفول له نه،، ما ادی،، یعنی پنځه سوه درهم واپس اخستې شی.ماضمن یعنی د زر درهمو واپس اخستلو اختیار به نه وی.ځکه چې د پنځه سوه درهمو باندې د صلحې مطلب دادې.چه مکفول له کفیل د پنځه سوه درهمو نه بری کړې دې.او بری کول داسې دی.ګویا مکفول له د پنځه سوه درهمو قرضه ساقط کړې ده.او په ساقط شوی مقدار کي کفیل ته د رجوع اختیار نه وی.نود ذکرشوی صلحې په صورت کي کفیل د مکفول عنه نه پنځه سوه درهم واپس اخستلې شی. اودا داسې ده.لکه مکفول له کفیل بری کړی.نوکه مکفول له، کفیل د پوره پور نه بری کړی.نو کفیل ته به د مکفول عنه ارخ ته د رجوع کاوه بالکل اختیار نه وی.اوکه د یوجزء نه بری کړی.نو کفیل چې څومره قدرې اداکړی.هم هغه اومره د مکفول له نه اخستلې شی.دغه ډول د صلحې په صورت کي چې کفیل کوم مقدار اداکړی. د مکفول عنه نه هم دغه اومره واپس اخستلې شی.

### د قرضه اداكولو نه وړاندي د كفيل د مال د مطالبي حكم

قَالَ (مصنف رحمه الله) فرمايي وَلَيْسَ لِلْكَفِيلِ أَنْ يُطَالِبَ الْمَكْفُولَ عَنْهُ بِالْمَالِ قَبْلَ أَنْ يُؤَدِّيَ عَنْهُ اود مكفول عنه د ارخه د پور ادا كاوه نه وړاندي كفيل ته د مكفول عنه نه د مال د مطالبي اختيار نشته لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُهُ قَبْلَ الْأَدَاءِ خكه چي كفيل د ادا كاوه نه وړاندي دپور مالك نه وي.

تشريح:- مسئله داده،چه تركومه پوري كفيل د مكفول عنه د ارخه قرضه ادانكړي،هغه وخت پوري كفيل ته د مكفول عنه نه دمال د مطالبي حق نه وي.دليل دادي،چه موجب للرجوع د كفيل مالك كيدل دي.يعني كفيل ته د مكفول عنه ارخ ته د رجوع كاوه اختيار هغه وخت وي،چه كله كفيل د پور مالك شي.حالانكه د ادا كاوه نه وړاندي كفيل د پور مالك نه وي.نوهر كله چي د ادا كاوه نه وړاندي كفيل د پور مالك نشو.نوموجب للرجوع هم اونه موندي شو.اوهر كله چي د رجوع واجبونكي شئ يعني دكفيل مالك كيدل اونه موندي شو.نود ادا كاوه نه وړاندي به كفيل ته د مكفول عنه د پور مال اخستلو اختيار هم نه وي.

بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِالشِّرَاءِ په خلاف د وكيل بالشراء، حَيْثُ يَرْجِعُ قَبْلَ الْأَدَاءِ خكه چي هغه د ادا كاوه نه وړاندي رجوع كولي شي. لِأَنَّهُ انْعَقَدَ بَيْنَهُمَا مُبَادَلَةٌ حُكْمِيَّةٌ خكه چي د وكيل او موكل په منځ كي مبادلهٔ حكمي منعقد شوي ده.

تشريح:- ددي په خلاف كه يوكس څوك سړي د څه شئ اخستلو وكيل جوړ كړي.نو وكيل ته اختيار دي،چه بائع د ثمن اداكولونه وړاندي دخپل موكل نه د ثمن رقم واخلي.خكه چي وكيل او موكل په منځ كي حكماً مبادله وي.نو وكيل د بائع په مرتبه كي او موكل د مشتري په مرتبه كي شو.او بائع ته د مبيع سپارلو نه وړاندي د ثمن د مطالبي حق وي.په دي وجه وكيل ته هم د خپل موكل نه د ثمن د مطالبي حق وي.كه وكيل خپل بائع ته ثمن اداكړي وي. اوكه ثمن ئي نه وي اداكړي.

### د مال په سلسله كښي د كفيل او مكفول عنه راګيرول

قَالَ فَإِنْ لُوزِمَ بِالْمَالِ نوكه د مال په سلسله كي كفيل لازم اونيولي شو كَانَ لَهُ أَنْ يُلَازِمَ الْمَكْفُولَ عَنْهُ نود كفيل لپاره جائز دي،چه هغه مكفول عنه لازم اونيسي حَتَّى يُخَلِّصَهُ تردي چي مكفول عنه ده ته خلاصي وركړي.

حل اللغة: ① يخلص-خلاصوي-② الحبس-بنديز-③ الجهة-طرف-④ لحق-يوځائي شو

تشريح:- مسئله داده،كه مكفول عنه د خپلي پور وصولولو لپاره كفيل پسي (لازم) وينختلو.يعني هر وخت كفيل پسي شاته لګيدلي وو.نو كفيل ته اختيار دي،چه دي د مكفول عنه پسي اولګي.يعني كفيل مكفول عنه پسي ګرځي.تردي چي مكفول عنه دكفيل لمنه پريږدي.يعني مكفول عنه، كفيل په دي مصيبت كي مبتلاكړي دي.نو ددي مصيبت نه خلاصول به هم په مكفول عنه باندي واجب وي.

وَكَذَا إِذَا حُبِسَ اوهم دغه ډول كه كفيل قيد كړي شو كَانَ لَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ نو دده اختيار دي،چه دي مكفول عنه قيد كړي لِأَنَّهُ لَحِقَهُ مَا لَحِقَهُ مِنْ جِهَتِهِ خكه چي كفيل ته څه قسمه پريشاني راپيښه شوه.هغه د مكفول عنه په وجه راپيښه شوه فَيُعَامِلُهُ بِمِثْلِهِ نود مكفول عنه سره هم دغه ډول معامله كولي شي.

تشريح:- اوكه مكفول له د خپلي پور په وجه كفيل قيد كړلو.نو كفيل ته هم اختيار شته،چه دي مكفول عنه قيد كړي.په دي شرط چي كفاله بامره وي.دا يوقول د امام شافعي رحمه الله هم دي.او امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددي قائل دي.د امام شافعي رحمه الله قول اظهر دادي،چه كفيل ته دا اختيار نشته،چه دي مكفول عنه قيد كړي.

② زمونږ د ارخه خواب دادي،چه كفيل ته څه پريشاني هم لاحق كيږي.دا د مكفول عنه په وجه لاحق كيږي. په دي وجه مكفول عنه باندي واجب دي.چه دي كفيل خلاص كړي.يعني د مكفول له قرضه اداكړي.اوكه مكفول عنه كفيل خلاص نكړي شو.نو كفيل ته به د مكفول عنه سره هم د هغه معاملي كاوه اختيار وي. كومه معامله چي مكفول له كفيل سره كوي.



### د مكفول عنه برى كول يا دين وصولولو سره د كفيل برى كيدل

وَإِذَا أَبْرَأَ الطَّالِبُ الْمَكْفُولَ عَنْهُ اوكله چي مكفول له مكفول عنه برى كړلو أَوِ اسْتَوْفَى مِنْهُ يا مكفول له د هغه نه خپل حق وصول كړو بَرِئَ الْكَفِيلُ نو كفيل برى شو لِأَنَّ بَرَاءَةَ الْأَصِيلِ تُوجِبُ بَرَاءَةَ الْكَفِيلِ خكه چي د اصيل برى كيدل د كفيل برى كيدل واجبوى لِأَنَّ الدَّيْنَ عَلَيْهِ فِي الصَّحِيحِ خكه چي د صحيح قول مطابق قرضه خو په اصيل باندي ده.

تشريح:- مسئله داده،كه مكفول له، مكفول عنه برى كړلو.يا ئي دمكفول عنه نه خپل دين وصول كړلو.نو كفيل به هم برى وي،خكه چي مكفول عنه برى كول د اصيل برى كول دي،خكه چي اصل دين هم په ده وي.اود اصيل برى كول مستلزم دي.د كفيل برى كاوه ته.په دي وجه اصيل يعني د مكفول عنه برى كاوه سره كفيل هم برى كيږي.او ابراء د اصيل، ابراء دكفيل ته خكه مستلزم ده،چه دصحيح قول مطابق دين په اصيل يعني مكفول عنه باندي واجب وي.په كفيل باندي واجب نه وي.په كفيل خوصرف مطالبه واجب وي.نو هر كله چي د مكفول له برى كاوه په وجه د مكفول عنه نه دين ساقط شو.نوپه مكفول عنه باندي د دين مطالبه هم پاته نه پاتي كيږي.اوهر كله چي په مكفول عنه باندي د دين مطالبه پاته نشوه.نود كفاله معنى،،ضم الذمة الى الذمة في المطالبة،، د نه موجود كيدلو په وجه كفيل باندي به هم مطالبه پاته نه پاتي كيږي.

وَإِنْ أَبْرَأَ الْكَفِيلَ اوكه مكفول له كفيل برى كړو لَمْ يَبْرَأِ الْأَصِيلُ عَنْهُ نو ددي څخه به اصيل برى نه وي لِأَنَّهُ تَبَعٌ خكه چي كفيل تابع دي وَلِأَنَّ عَلَيْهِ الْمُطَالَبَةَ اوخكه چي په كفيل باندي صرف مطالبه ده وَبَقَاءُ الدَّيْنِ عَلَى الْأَصِيلِ بِدُونِهِ جَائِزٌ اود كفيل د مطالبي نه بغير په اصيل باندي قرضه كيدل جائز دي.

تشريح:- اوكه مكفول له كفيل برى كړلو.نو اصيل يعني مكفول عنه به د پور نه نه برى كيږي.① خكه چي كفيل د مكفول عنه تابع دي.او مكفول عنه تابع نه دي.نوكه د كفيل په برى كيدلو سره اصيل برى كړي شي.نود اصيل به د خپل تابع، تابع كيدل لازم شي.حالانكه دا قلب موضوع ده.په دي اوونيلي شو.چه د كفيل په برى كيدلو سره به اصيل نه برى كيږي.② دوهم دليل دادي،چه په كفيل باندي صرف مطالبه واجبيږي.اصل پور نه واجبيږي.او په اصيل باندي د پور پاته كيدل هغه وخت هم جائز دي.كله چي كفيل بالكل نه وي.لكه د كفاله نه وړاندي اصيل باندي قرضه موجود وه.يا كفيل مړشو.نود اصيل نه قرضه نه ساقطيږي.نوهم دغه ډول په اصيل به هغه وخت هم قرضه پاته وي.كله چي كفيل د مطالبي نه برى كړي شوي وي.نو ثابته شوه،چه دكفيل په برى كيدلو سره اصيل يعني مكفول عنه د دين نه نه برى كيږي.

### د مكفول عنه نه په پور مؤخر كولو سره د كفيل نه مؤخر كيدل

وَكَذَا إِذَا أَخَّرَ الطَّالِبُ عَنِ الْأَصِيلِ اوهم دغه ډول كه مكفول له د مكفول عنه نه قرضه مؤخر كړله فَهُوَ تَأْخِيرٌ عَنِ الْكَفِيلِ نودا به د كفيل نه مؤخر وي وَلَوْ أَخَّرَ عَنِ الْكَفِيلِ اوكه د كفيل نه ئي مؤخر كړله لَمْ يَكُنْ تَأْخِيرًا عَنِ الَّذِي عَلَيْهِ الْأَصْلُ نودا به دهغه چا نه مؤخر كول نه وي.په چاچه اصل دين دي لِأَنَّ التَّأْخِيرَ إِبْرَاءٌ مُؤَقَّتٌ خكه چي مؤخر كول يو معين وخت پوري برى كول وي. فَيُعْتَبَرُ بِالْإِبْرَاءِ الْمُؤَبَّدِ نو دائمي طور باندي برى كاوه باندي به قياس كولي شي.

حل اللغة: التاخير-روستو كيدل-المؤبد-هميشه دپاره-شهر-مياشت-تاجيل-نيته

تشريح:- صورت د مسئلي دادي،كه مكفول له د اصيل يعني مكفول عنه نه د دين مطالبه د يو معين وخته پوري مؤخر كړله.نودا به د كفيل نه هم مؤخر كيږي.چه د مقرر ميعاد پوري به د كفيل نه هم د مطالبي حق نه وي.اوكه مكفول له د كفيل نه مطالبه د يو معين وخت پوري مؤخر كړله نودا به د مكفول عنه نه مؤخر كول نه وي.

① دليل دادي،چه مؤخر كول چونكه د يوي مودي پوري مطالبه ساقطول دي.په دي وجه دا د يومعين وخت پوري برى كول شو.حاصل داچه د يوي مودي پوري مطالبه مؤخر كول چونكه ابراء مؤقت ده.په دي وجه به دا په ابراء مؤبد (د هميشه برى كول) باندي قياس كولي شي.اود ابراء مؤبد په صورت كي چونكه د مكفول عنه په برى كاوه سره كفيل برى كيږي.اود كفيل په برى كاوه سره مكفول عنه نه برى كيږي.دغه ډول په ابراء مؤقت كي به هم د

مكفول عنه په بري كاوه سره كفيل بري كيږي خود كفيل په بري كاوه سره به مكفول عنه نه بري كيږي.

ﺁ پاتي شوه داخبره چي ابراء مؤبد د كفيل په رد كاوه سره ولي نه ردكيږي.او ابراء مؤقت ولي ردكيږي؟ نو ددي وجه داده چه ابراء مؤبد د كفيل په حق كي اسقاط محض دي په دي كي د تمليك معنى بالكل نه موندلي كيږي او اسقاط ردكول نه قبلوي په دي وجه ابراء مؤبد د كفيل د رد كاوه باوجود نه ردكيږي او ابراء مؤقت صرف د مطالبي د تاخير نوم دي د اسقاطاتو د قبيلي څخه نه دي او كوم شي چي د اسقاطاتو د قبيلي څخه نه وي هغه په رد كولو سره ردكيږي په دي وجه ابراء مؤقت په رد كاوه سره ردكيږي.

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددي إِذَا كَفَلَ بِالْمَالِ الْحَالِّ مُؤَجَّلًا إِلَى شَهْرٍ كله چي في الحال د واجب الاداء مال يو مياشت ميعاد مقرر كړي او كفيل شي فَإِنَّهُ يَتَأَجَّلُ عَنِ الْأَصِيلِ نودا به د اصيل نه هم مؤجل وي لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ إِلَّا الدَّيْنُ حَالَ وُجُودِ الْكَفَالَةِ ځكه چي د كفاله موجودكيدلو په حالت كي د مكفول له سواء د پور نه بل څه حق نشته فَصَارَ الْأَجَلُ دَاخِلًا فِيهِ نو ميعاد هم په دي قرضه كي داخل شو أَمَّا هَاهُنَا فَبِخِلَافِهِ پاتي شو دلته كي نو ددي په خلاف دي

تشريح:- داعبارت د يو سوال مقدر خواب دي سوال مقدر دادي چه تاسو اوفرمائيل كه د كفيل نه مطالبه مؤخر كړي شوه نود اصيل څخه به نه مؤخر كيږي حالانكه دا غلط دي ځكه كه څوك سړي د داسي مال كفيل وي چه ددي اداكول في الحال واجب دي خوده د يو مياشت په مهلت باندي كفالت قبول كړو مثلاً په حامد باندي د خالد سل دينار في الحال واجب الاداء دي خو واصف دده كفالت د يو مياشت په مهلت باندي قبول كړو نو په دي صورت كي هم لكه څنګه چي دكفيل نه مطالبه مؤخر كيږي دغه ډول د اصيل يعنى مكفول عنه نه هم مؤخر كيږي او مكفول له ته د مكفول عنه نه هم بالفعل د مطالبي اختيار نشته نو ثابته شوه كه د كفيل نه مطالبه مؤخر كړي شوه نود مكفول عنه څخه به هم مؤخر كيږي؟

خواب ددي خواب دادي چه په دي صورت كي د كفاله د وجود په وخت د مكفول له د پور نه سوا بل هيڅ حق نشته ځكه چي مطالبه كومه چي د كفاله په وجه حاصليږي هغه تراوسه پوري نه ده ثابت شوي نو اجل (ميعاد) په اصل دين كي داخل نشوه ځكه چي كفيل اجل، نفس دين اړخ ته منسوب كړي دي نو دين يعنى قرضه مؤجل شوه او دين چونكه د مكفول عنه په ذمه ثابتيږي په دي وجه كله چي اصل دين مؤجل شو نودا اجل به د مكفول عنه او كفيل دواړو په حق كي ثابت وي او پاتي شوه د متن مسئله نو په دي كي كفاله مخكي ده بيا ددي نه روسته مكفول له د كفيل نه مطالبه مؤخر كړله كومه مطالبه چي ده ته د كفالي په وجه حاصل شوي وه او په دي سره د اصل دين مؤخر كول نه لازميږي اوهر كله چي د اصل دين مؤخر كول لازم نشو. نو مكفول له د مكفول عنه بدستور في الحال مطالبه كولي شي اود كفيل نه چونكه مطالبه مؤخر كړي شوه په دي وجه به دده نه في الحال د مطالبي حق نه وي.

**د نيم مال په عوض صلح شولو نه روسته دمكفول عنه اود كفيل بري كيدل**

📖 قَالَ فَإِنْ صَالَحَ الْكَفِيلُ رَبَّ الْمَالِ عَنِ الْأَلْفِ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ نو كه كفيل د مكفول له سره د يو زر په سلسله كي په پنځه سوه باندي صلح اوكړله فَقَدْ بَرِئَ الْكَفِيلُ وَالَّذِي عَلَيْهِ الْأَصْلُ نو كفيل اوهغه كس په چا چي اصل دين دي دواړه بري شو لِأَنَّهُ أَضَافَ الصُّلْحَ إِلَى الْأَلْفِ الدَّيْنِ ځكه چي كفيل صلح يو زر دين اړخ ته منسوب كړي ده وَهِيَ عَلَى الْأَصِيلِ اودا يو زر دين په اصيل باندي دي فَبَرِئَ عَنْ خَمْسِمِائَةٍ نو اصل د پنځه سوو نه بري شو لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ ځكه چي دا صلح اسقاط ده وَبَرَاءَتُهُ تُوجِبُ بَرَاءَةَ الْكَفِيلِ اود اصل بري كيدل د كفيل بري كيدل واجبوي ثُمَّ بَرِئَا جَمِيعًا عَنْ خَمْسِمِائَةٍ بِأَدَاءِ الْكَفِيلِ بيا د كفيل په ادا كاوه سره اصيل او كفيل دواړه د پنځه سوه نه بري شو وَيَرْجِعُ الْكَفِيلُ عَلَى الْأَصِيلِ بِخَمْسِمِائَةٍ او كفيل به د اصيل نه پنځه سوه درهم واپس اخلي إِنْ كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِأَمْرِهِ په دي شرط چي كفاله بامره وي.

حل اللغة ① صالح-صلح وكړه-② الدين-قرض-③ اسقاط-ساقطول-④ يرجع-واپس اخلي



تشريح:- ددي مسئلي څلور صورتونه دي. ① كفيل د مكفول له سره د زر درهمو په سلسله كي په پنځه سوه درهمو باندي صلح اوكړله.اود مكفول عنه اود كفيل دواړو د بري كيدلو شرط ئي اولګولو. ② يا خاص طور د مكفول عنه د بري كيدلو شرط ئي اولګولو. ③ يا خاص طور د كفيل د بري كيدلوشرط ئي اولګولو. ④ يا هيڅ شرط ئي اونه لګولو.

ﺁ په رومبي او دوهم صورت كي مكفول عنه او كفيل دواړه به د پنځه سوه درهمو نه بري شي.اود پاتي پنځه سوه درهمو مطالبه، مكفول له د كفيل نه هم كولي شي.اود مكفول عنه نه هم كولي شي.او په دريم صورت كي به د پنځه سوه درهمو نه خاص طور باندي كفيل بري وي.او په مكفول عنه باندي به زر درهم على حاله پاتي وي.او مكفول له ته به اختيار وي.كه زره ئي غواړي.پوره قرضه يعنى زر درهم به د مكفول عنه نه وصول كوي.اوكه زره ئي غواړي.پنځه سوه درهم به د كفيل نه، او پنځه سوه درهم به د مكفول عنه نه وصول كوي.او په څلورم صورت كي (كومه چي د كتاب مسئله ده) يعنى كه كفيل مكفول عنه ته اوونيل چه ما تا سره د زر درهمو په سلسله كي پنځه سوه درهمو باندي صلح اوكړله.او په دي باندي ئي د شرط وغيره اضافه اونكړله.نو كفيل او مكفول عنه به دواړه د پنځه سوه درهمو نه بري وي.ځكه چي كفيل صلح د پور لپاره زر درهمو اړخ ته منسوب كړي ده.اود زر درهمو قرضه مكفول عنه باندي ده.نود صلح په نتيجه كي پنځه سوه درهم د مكفول عنه د ذمي نه ساقطيږي.او مكفول عنه بري كيږي.او وړاندي تيرشوي دي.چه د مكفول عنه بري كيدلو سره كفيل بري كيږي.او هركله چي د مكفول عنه بري كيدلو سره كفيل بري كيږي.نو پنځه سوه درهمو څخه به مكفول عنه او كفيل دواړه بري كيږي.او پاتي شو باته پنځه سوه درهم،نو كفيل چي كله دا ادا كړي.نو ددي پنځه سوه څخه به هم دواړه بري شي.البته كه كفاله د مكفول عنه په حكم سره وه.نو كفيل ته به د مكفول عنه نه د پنځه سوه درهمو واپس اخستلو اختيار وي.اوكه كفاله دده د امر نه بغير وه.نو بيا به درجوع اختيار نه وي.

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددي إِذَا صَالَحَهُ عَلَى جِنْسٍ آخَرَ كله ئي چي په بل (بدل) جنس باندي صلح كړي وي لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ حُكْمِيَّةٌ ځكه چي دا حكماً مبادله ده فَمَلَكَهُ نو كفيل د يو زر مالك شو فَيَرْجِعُ بِجَمِيعِ الْأَلْفِ نو هغه به پوره يو زر درهم واپس اخلي.

تشريح:- اوكه كفيل د مكفول له ته د پور نه علاوه په بل څه جنس باندي صلح اوكړله.مثلاً كفيل د زر درهمو په سلسله كي د كپړي په يو تهان باندي صلح اوكړله.اود كپړي يو تهان ئي وركړو.نو كفيل به د زر درهمو مالك وي.او [illegible] چي د زر درهمو مالك شو.نو دي به زر درهم د مكفول عنه نه اخلي.په دي شرط چي كفاله دده په امر وي.

وَلَوْ كَانَ صَالَحَهُ عَمَّا او كه كفيل د مكفول عنه سره د هغه حق په اړه كي صلح اوكړله اسْتَوْجَبَ بِالْكَفَالَةِ كوم چي د كفالت په وجه په ده باندي واجب شوي دي لَا يَبْرَأُ الْأَصِيلُ نو اصيل به بري نه وي لِأَنَّ هَذَا إِبْرَاءُ الْكَفِيلِ عَنِ الْمُطَالَبَةِ ځكه چي دا كفيل د مطالبي نه بري كول دي.

حل اللغة ① استوجب-واجب شو-② المطالبة-غوښتل-③ الابراء-بري كول--

تشريح:- اوكه كفيل د مكفول له سره د هغه حق په اړه كي صلح اوكړله.كوم حق چي د كفاله په وجه، دمكفول له كفيل باندي واجب شوي وو مثلاً كفيل مكفول له ته سل درهم وركړل.درخواست ئي اوكړو.چه ماد كفالت نه بري كړه پاتي مفت درخواست اوكړو.نو په دي سره به مكفول عنه نه بري كيږي.بلكه د مكفول عنه په ذمه به قرضه او مطالبه بدستور پاته وي.ځكه چي كفيل د مطالبي نه بري كول د كفالي فسخ كول دي.اصل دين ساقطول نه دي.نو هركله چي دا د كفالي فسخ ده.او اصل دين ساقطول نه دي.نود كفالي په وجه چي په كفيل باندي كومه مطالبه واجب وه.هغه به ساقط شي.خود مكفول عنه به اصل دين او ددي مطالبه نه ساقطيږي. البته دومره خبره ضرور ده.كه كفيل په سل درهمه باندي صلح اوكړله.نودي به سل درهم د مكفول عنه نه واپس اخلي.په دي شرط چي كفاله بامره وي او مكفول له به د مكفول عنه د نهه سوه درهمو مطالبه كوي.اوكه كفيل مفت صلح كړي ده.نو

په دې صورت کې به کفیل د مکفول عنه هیڅ رجوع نه کوي.اومکفول له ته به د مکفول عنه د پوره زر درهمو اخستلو اختیار وي.

**د کفیل د براءت بعض صورتونه**

قَالَ فرمايي وَمَنْ قَالَ لِكَفِيلٍ ضَمِنَ لَهُ مَالًا اوکوم مکفول له چې کفیل ته کوم چې دده لپاره د مال ضامن شوي وو. دا اوونیل قَدْ بَرِئْتَ إِلَيَّ مِنَ الْمَالِ چې تا د مال نه زما د ارخ براءة اوکړو رَجَعَ الْكَفِيلُ عَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ نو کفیل به د مکفول عنه نه مال واپس اخلي مَعْنَاهُ بِمَا ضَمِنَ لَهُ بِأَمْرِهِ ددې مطلب دادې.چه د کوم مال د هغه په حکم سره د مکفول له لپاره ضامن شوي وو.

**تشریح:-** د کفاله بامره په صورت کې کفیل ته د مال ضمان واپس اخستلو د اختیار مسئلوکې ړومبۍ مسئله داده.چه مکفول له هغه کفیل ته کوم چې د مکفول عنه په حکم سره، د مکفول له لپاره کفیل شوي وو.داسې اوونیل.چه تا د مال نه زما د ارخه براءت اوکړو.نو په دې صورت کې کفیل ته د خپل مکفول عنه نه د هغه مال واپس اخستلو اختیار وي.د کوم چې دې ضامن شوي وو.

لِأَنَّ الْبَرَاءَةَ الَّتِي ابْتِدَاؤُهَا مِنَ الْمَطْلُوبِ خکه چې هغه براءت چې ددې ابتداء د مکفول عنه نه شوې وي وَانْتِهَاؤُهَا إِلَى الطَّالِبِ او ددې انتهاء مکفول له پورې وي لَا تَكُونُ إِلَّا بِالْإِيفَاءِ نودا د ادا کاوه نه بغیر نه کیږي فَيَكُونُ هَذَا إِقْرَارًا بِالْأَدَاءِ نودا د ادا کاوه اقرار دې فَيَرْجِعُ نو کفیل به دا د مکفول عنه نه واپس اخلي.

**حل اللغة:** ① الابتداء-شروع-② الانتهاء-پوره کیدل-③ الایفاء-ادا کول-④ یرجع-واپس اخلي

**تشریح:-** دلیل دادې.چه د مکفول له په قول «قد برئت إلي من المال» کې د براءت ابتداء د کفیل نه شوې ده. خکه چې په براءت کې کفیل مخاطب دې.اود براءت انتهاء په مکفول له باندې شوې ده.خکه چې لفظ «إلي» د انتهاء غایت لپاره ده.او په دې ترکیب کې متکلم کوم چې مکفول له دې.هم دا منتهی دې.نو ثابته شوه.چه په دې ترکیب کې کفیل مبتداء( دکوم نه چې ابتداء شوې ده)او مکفول له منتهی ( په کوم چې انتهاء شوې ده) او داسې براءت چې ددې ابتداء د کفیل نه وي.او ددې انتهاء په مکفول له باندې وي.صرف په مال ادا کاوه سره کیږي.نودا داسې شوه.لکه چې مکفول له داسې ونیلي وي.چه «دفعت إلي المال يا قبضته منك» یعنی تا ماته مال راکړې دې.یا ما ستا نه په مال باندې قبضه کړې ده.نو ګویا مکفول له ددې خبرې اقرار اوکړو.چه کفیل هغه مال اداکړې دې.د کوم چې دې ضامن شوي وو.اوهرکله چې مکفول له د مال ادا کاوه اقرار اوکړو.نو اوس به ده ته د کفیل او مکفول عنه دواړو نه د مطالبې حق نه وي.اوکفاله چونکه د مکفول عنه په حکم سره ده.په دې وجه به کفیل ته دا اختیار وي.چه دې د مکفول عنه هغه مال واپس واخلي.دکوم چې دې ضامن شوي وو.

**د مکفول له په برې کولو سره د کفیل د واپس اخستلو د اختیار مسئله**

وَإِنْ قَالَ اوکه مکفول له اوونیل. أَبْرَأْتُكَ چې ته ما برى کړې لَمْ يَرْجِعِ الْكَفِيلُ عَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ نو کفیل د مکفول عنه نه واپس نشي اخستې.

**تشریح:-** دویمه مسئله داده.چه مکفول له کفیل ته اوونیل «ابرأتك» ته ما برى کړې.نو په دې صورت کې به کفیل ته د خپل مکفول عنه د واپس اخستلو اختیار نه وي.البته مکفول له به دمکفول عنه د خپل مال مطالبه کوي.

لِأَنَّهُ بَرَاءَةٌ لَا تَنْتَهِي إِلَى غَيْرِهِ خکه چې دا داسې براءت دې.چه دا د مکفول له نه علاوه ارخ ته نه منتهی کیږي وَذَلِكَ بِالْإِسْقَاطِ اودا په ساقطولو سره حاصلیږي فَلَمْ يَكُنْ إِقْرَارًا بِالْإِيفَاءِ نودا به د کفیل د ادا کاوه اقرار نه وي.

**تشریح:-** دلیل دادې.چه دا داسې براءت دې.کوم چې صرف مکفول له ارخ ته منتهی کیږي.یعنی مکفول له ارخ ته رسیږي.ددې نه علاوه ارخ ته نه رسیږي.نو ددې ابتداء د مکفول له نه اوشوه. دکفیل نه اونشوه.بلکه په کفیل باندې ددې انتهاء اوشوه.خکه چې مکفول له اوونیل.ته ما برى کړې.یعنی د براءت پیل زما نه اوشو.او انتهاء په تا



اوشوه.اود کوم براءت ابتداء.چې د مکفول له نه وي.او ددې انتهاء په کفیل باندې وي.نودا په براءت ساقطولو سره حاصلیږي.ګویا مکفول له دا اوونیل.چه ما ستا نه خپله مطالبه ساقط کړې ده.اود مکفول له، د کفیل نه د دین مطالبه ساقطولو سره دا نه لازمیږي.چه مکفول له د کفیل مال د مکفول به ادا کاوه اقرارکړې دې.اوهرکله چې د کفیل د ادا کاوه اقرار اونشو.نو کفیل ته به د مکفول عنه نه د واپس اخستلو اختیار هم نه وي.خکه چې کفیل ته مکفول عنه ارخ ته د رجوع کاوه اختیار په دې صورت کې وي.کله چې کفیل د مکفول عنه د ارخه مال مکفول به اداکړي.اوچونکه د کفیل په برى کیدلو سره د مکفول عنه برى کیدل نه لازمیږي.نو په دې وجه په دې صورت کې مکفول له ته د مکفول عنه نه د خپل مال د مطالبې پوره حق وي.

**د مکفول له په برى کولو سره د اداکولو اونه اداکولو په صورت کښې د کفیل د براءت مسئله**

وَلَوْ قَالَ بَرِئْتَ اوکه مکفول له اوونیل.ته برى شوې قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ امام محمد ﷫ فرمایي هُوَ مِثْلُ الثَّانِي چه دا د دویمې مسئلې پشان دې لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْبَرَاءَةَ بِالْأَدَاءِ إِلَيْهِ خکه چې ددې هم احتمال دې چه دا براءت د مکفول له په ادا کاوه سره وي وَالْإِبْرَاءِ اودا احتمال هم دې.چه د مکفول له په برى کاوه سره وي فَيَثْبُتُ الْأَدْنَى نود کمې درجې براءت به ثابت شي إِذْ لَا يَرْجِعُ الْكَفِيلُ بِالشَّكِّ خکه چې په شك سره کفیل واپس نشي اخستې.

**حل اللغة:** ① یتحمل-احتمال لری-② الادنی-کم\معمولی-③ دون الابراء-نه برى کول-④ المطلوب-فیل

**تشریح:-** دریمه مسئله داده.چه مکفول له کفیل ته اوونیل. «برئت» ته برې شوې.او لفظ «إلي» ئې او نه ونیلو.نو په دې کې اختلاف دې.امام محمد ﷫ فرمائی.چه ددې حکم د دویمې مسئلې یعنی د «ابرأتك» پشان دې.یعنی لکه څنګه چې د «ابرأتك» ونیلو په صورت کې کفیل برى کیږي.اوده ته مکفول عنه ته د رجوع کاوه اختیار نه وي.دغه ډول د «برئت» ونیلو په صورت کې هم کفیل برى کیږي.او ده ته به مکفول عنه ارخ ته د رجوع کاوه اختیار نه وي.

دلیل ① دادې.چه په لفظ «برأت» کې دوې (دوه) احتماله دی.① یو داچه مکفول له کفیل ته اوونیل.ته برى شوې. خکه چې تا مال اداکړې دې.② دوهم احتمال دا چې ته برى شوې.خکه چې ته مابرى کړې ئې.حاصل داچه یو احتمال د،، براءت بالاداء،، دې.او یو احتمال د،، برائت بالابراء،، دې.نو په دې دواړوکې ،،براءت بالابراء،، چونکه ادنی دې.خکه به،، براءت بالابراء،، ثابت وي.خکه کله چې ادنی او اعلی، یا د کم او زیات احتمال وي. نو ادنی اوکم ثابتیږي.اعلی او زیات نه ثابتیږي.لکه ( مثلاً) د لمونځ په مهال (دوران) د لمونځ په رکعتونوکې شك شي.مثلاً دا شبه وي.چه دوې (دوه) رکعتونه اوشو.اوکه درې رکعتونه اوشو.نوحکم دادې.چه دوې (دوه) رکعته دې شمارکړي.نوهم دغه ډول دلته کې هم د کم درجې برائت حاصلیږي.یعنی ونیلې به شي چه کفیل د مکفول له په برى کاوه سره برى شوې دې.او کفیل چې هرکله د مکفول له په برى کاوه سره برى شوې دې.نو ده ته به مکفول عنه ارخ ته د رجوع کاوه اختیار نه وي.لهذا د لفظ،، برئت،، ونیلو په صورت کې به هم کفیل ته مکفول عنه ارخ ته د رجوع کاوه اختیار نه وي.② دوهم دلیل دادې.چه ددې خبرې یقین دې.چه په لفظ د برئت سره کفیل برى کیږي.که د مکفول له په برى کولو سره برى شوې وي.اوکه مکفول له ته د مال مکفول به په ادا کاوه سره برى شوې وي.خو مکفول عنه ارخ ته په رجوع کولوکې شك دې.خکه که براءت بالاداء وي. بیا خوکفیل ته د رجوع کاوه اختیار دې.اوکه براءت بالابراء ده.نود رجوع اختیار نشته.نوهرکله چې د کفیل په رجوع کولوکې شك شو.نود شك په وجه به د رجوع کاوه اختیار نه وي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او امام ابویوسف ﷫ فرمایي هُوَ مِثْلُ الْأَوَّلِ [1] چې دا د ړومبۍ مسئلې پشان ده لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِبَرَاءَةٍ

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في العناية (٦\٣١٠) والدرالمختار(٤\٣٠٧) نقلاً عن القول الراجح (٢\٩٣)-

خکه چي ده داسي براءت اقرار کړي دي اَبْتَدَأَ هَاوُمِنَ الْمَطْلُوبِ د کوم ابتداء، چي د کفيل د اړخه ده اِلَيْهِ الْإِيفَاءُ دُونَ
الْإِبْرَاءِ او د کفيل په اړخ کي صرف اداء ده. بری کول نه دی.

تشریح:- حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. چه ددي حکم د رومبۍ مسئلي يعنی د «برات الی» پشان دي. يعنی لکه
څنګه چي د «برات الی» ونيلو په صورت کي کفيل ته مکفول عنه اړخ ته درجوع کاوه اختيار وی. دغه ډول صرف
د لفظ ،،برئت،، ونيلو په صورت کي به هم کفيل ته مکفول عنه اړخ ته د رجوع کاوه اختيار حاصل وی. ددي دليل
دادي. چه مکفول له په ،،برئت،، ونيلو سره دداسي براءت اقرار کړي دي. چه ددي ابتداء د کفيل نه ده. خکه چي ده
حرف خطاب يعنی ،،تا،، ذکرکړي ده. نو براءت به په داسي فعل سره وی. کوم چي خاص طور باندي کفيل اړخ ته
منسوب دي. او د کفيل د اړخه اداکول وی. برئ کول نه وی. يعنی اداکول خود کفيل په فعل سره کيږي. خو بری کول
ده په فعل سره نه موجودکيږي. نو هرکله چي دا براءت د کفيل د اړخه دي. او د کفيل د اړخه چي کوم براءت
حاصليږي. هغه چونکه په ادا کاوه سره حاصليږي. په دي وجه به دا براءت هم د کفيل په ادا کاوه سره
حاصليږي. او کوم کفالت چي د کفيل په ادا کاوه سره حاصليږي. په هغې کي چونکه کفيل ته مکفول عنه اړخ ته د
رجوع کاوه اختيار وی. په دي وجه د لفظ ،،برئت، ونيلو په صورت کي به هم کفيل ته مکفول عنه اړخ ته د رجوع
پوره پوره اختيار وی.

وَقِيلَ او ونيلی شوی دی فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا إِذَا كَانَ الطَّالِبُ حَاضِرًا چي په ذکرشوی ټولو صورتونوکي که مکفول له
موجود وی يَرْجِعُ فِي الْبَيَانِ إِلَيْهِ نو هم دده بيان اړخ ته به رجوع کولای شی او لِأَنَّهُ هُوَ الْمُجْمِلُ خکه چي اجمال کونکي
هم دي دي.

تشریح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. چه بعض مشائخو ونيلی دی. چه په مسائل ثلاثه کي ذکرشوی احکام هغه
وخت دی. کله چي مکفول له ذکرشوی الفاظ ونيلو نه روسته غائب شوي وی. خو که مکفول له موجود وی. نو په
دري واړه مسئلوکي به دده بيان اړخ ته رجوع کولي شي. يعنی دده څخه به پوښتنه کولي شی. چه ده په مال مکفول
له باندي قبضه کړي ده. او که قبضه ئي نه ده کړي. خکه چي په کلام کي ، مکفول له اجمال پيداکړي دي. او دا
قاعده ده. چه د کلام مجمل تفسير او بيان پخپله د مجمل ( د اجمال کونکی) نه معلومولي شي. نو په ذکرشوي
مسئلوکي هم چونکه يو ډول اجمال دي. په دي وجه دي دري واړه مسئلوکي به هم مجمل يعنی مکفول له اړخ ته
رجوع کولي شی. په دي شرط چي مکفول له موجود وی.

## د کفالت نه بري کولو شرط سره د معلق کولو حکم

قَالَ وَلَا يَجُوزُ تَعْلِيقُ الْبَرَاءَةِ مِنَ الْكَفَالَةِ بِالشَّرْطِ او د کفاله بری کول په شرط باندي معلق کول جائز نه دی لِمَا فِيهِ
مِنْ مَعْنَى التَّمْلِيكِ خکه چي په دي کي د مالك کاوه معنی ده كَمَا فِي سَائِرِ الْبَرَاءَاتِ لکه څنګه چي په نورو
براءتونوکي کيږي.

تشریح:- ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی. چه د کفالي نه بری کيدل په هيڅ شرط باندي معلق کول جائز نه دی. مثلاً
مکفول له او ونيل. «إذا جاء غدا فانت بریء من الكفالة» که صباله ورځ راغله. نو ته د کفالي نه بری ئي. دا جائز نه دی.
دليل دادي. چه د کفاله نه بری کيدل اسقاط محض نه دي. بلکه په دي کي تمليك يعنی د مالك کاوه معنی ده. په
دي طريقه چي د کفاله په وجه مکفول له د کفيل نه د مطالبي کاوه مالك وو. خو کله چي کفيل بری کړي شو. نو ګويا
کفيل د مطالبي مالك کړي شو. او تمليکات يعنی مالك کول په شرط باندي معلق کول ناجائز دی. نو د کفالي نه
بری کول به هم په شرط باندي معلق کول ناجائز وی. لکه څنګه چي په نورو براءتونوکي شرط باندي معلق کول
ناجائز دی.



وَيُرْوَى أَنَّهُ يَصِحُّ او روايت دي. چه دا صحيح ده لِأَنَّ عَلَيْهِ الْمُطَالَبَةَ خکه چي د صحيح قول مطابق کفيل باندي مطالبه
لازم ده دُونَ الدَّيْنِ فِي الصَّحِيحِ قرضه ( لازم) نه ده فَكَانَ إِسْقَاطًا مَحْضًا نو دا به صرف ساقطول وی كَالطَّلَاقِ لکه
څنګه چي طلاق دي وَلِهَذَا لَا يَرْتَدُّ الْإِبْرَاءُ عَنِ الْكَفِيلِ بِالرَّدِّ او هم په دي وجه کفيل بری کول دده په رد کاوه سره به نه رد
کيږي بِخِلَافِ إِبْرَاءِ الْأَصِيلِ په خلاف د اصيل د بری کولو.

تشریح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چه د نوادر د روايت مطابق ،،براءت من الكفاله،، په شرط باندي معلق کول
جائز دی. ددي روايت دليل دادي. چه د کفيل کفاله نه بری کول، اسقاط محض دي. لکه څنګه چي طلاق اسقاط
محض دي. خکه چي د صحيح قول مطابق کفيل باندي مطالبه لازميږي. قرضه نه لازميږي. او د کفيل په بری کيدلو
سره مطالبه ساقطيږي. نو معلومه شوه. چه ،،براءت من الكفاله،، اسقاط محض دي. هم دا وجه ده. چه د کفيل
کفالي نه بری کيدل، دده په رد کاوه سره نه ردکيږي. خو که اصيل يعنی مکفول عنه خپل بری کول ردکړي. نو
ردکيږي. خکه چي کوم شيونه د اسقاطاتو د قبيلي څني وی. هغه په رد کاوه سره نه ردکيږي. او کوم شيونه چي د
تمليکاتو د قبيلي څني وی. هغه په رد کاوه سره ردکيږي. بهرحال ثابته شوه. چه د کفيل بری کيدل اسقاط محض
دي. او اسقاط محض په شرط باندي معلق کول صحيح دی. په دي وجه براءت من الكفاله به هم په شرط باندي
معلق کول جائز وی.

## د کوم حق استيفاء چي د کفيل نه ممکن نه وی د هغې د کفالت حکم

قَالَ وَكُلُّ حَقٍّ لَا يُمْكِنُ اسْتِيفَاؤُهُ مِنَ الْكَفِيلِ او د کوم حق چي د کفيل نه وصولول ممکن نه وی لَا تَصِحُّ
الْكَفَالَةُ بِهِ د هغې کفاله صحيح نه ده كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ لکه حدود او قصاص مَعْنَاهُ بِنَفْسِ الْحَدِّ ددي معنی داده. چه
د نفس حد ( کفالت صحيح نه دي).

حل اللغة: ① الاستيفاء-وصولول-② ايجاب-واجبول-③ العقوبة-سزا-④ النيابة-نيابت

تشریح:- ابو الحسين قدوری رحمه الله د قاعدي په طور اوفرمائيل. هرهغه حق چي د کفيل نه ددي حاصلول شرعاً صحيح
نه وی. د هغې کفاله ټيك نه ده. مثلاً د نفس حد او نفس قصاص کفاله جائز نه ده. البته په کوم کس چي حد
يا قصاص واجب وی. د قاضی په مجلس کي دده دحاضرولو کفيل کيدل اګرچه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په
نيز جائز نه دی. خو د صاحبينو او جمهورو عالمانو رحمهم الله په نيز جائز دی.

لَا بِنَفْسِ مَنْ عَلَيْهِ الْحَدُّ نه د هغه سړي د ذات په چاچه کفاله ده لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ إِيجَابُهُ عَلَيْهِ خکه چي په کفيل باندي حد يا
قصاص واجبول متعذر دی وَهَذَا لِأَنَّ الْعُقُوبَةَ لَا تَجْرِي فِيهَا النِّيَابَةُ او دا خکه چي په سزا کي نيابت نه جاری کيږي.

تشریح:- البته د نفس حد او نفس قصاص کفاله بالاتفاق جائز نه ده. مثلاً حامد او ونيل. که خالد حد زنا يا قصاص
ورنکړو. نو زه دده د اړخه کفيل يم. په مادي حد او قصاص جاری کړي شی. ددي د عدم جواز دليل دادي. چه په
کفيل باندي حد يا قصاص واجبول متعذر او ناممکن دی. خکه چي په کفيل باندي د حد يا قصاص وجوب به يا
اصالةً وی. او يا به نيابةً وی. اول د خلاف مفروض کيدلو په وجه باطل دي. خکه چي مسئله دا فرض کړي شوي
ده. چه دداسي جرم ارتکاب چي ددي په وجه حد يا قصاص واجب وی. کفيل نه دي کړي. بلکه بل کس کړي دي. نو
هرکله چي د جرم ارتکاب د کفيل نه علاوه بل کس کړي دي. نو په کفيل باندي حد يا قصاص څنګه واجب کيدای
شی. او په کفيل باندي نيابةً هم حد يا قصاص نه واجبيږي. خکه چي په سزاګانوکي نيابت نه جاری کيږي. او په
سزاګانو کي نيابت خکه نه جاری کيږي. چه د سزا مقصد مرتکب د جرم، جرم نه منع کول دی. او نائب ته په سزا ور
کاوه سره دا مقصد نه حاصليږي. په دي وجه په حد او قصاص يعنی سزاګانوکي دا نيابت هم نه جاری کيږي. نو
هرکله چي په کفيل باندي د حد او قصاص وجوب نه اصالةً کيدای شی. او نه نيابةً کيدای شی. نو ثابته شوه. چه د
نفس قصاص کفيل کيدل صحيح نه دی.

### د مشتري د اړخه د ثمن د كفالت حكم

قَالَ وَإِذَا تَكَفَّلَ عَنِ الْمُشْتَرِي بِالثَّمَنِ اوكه د مشتري د اړخه د ثمن كفيل شو جَازَ نو جائز دی لِأَنَّهُ دَيْنٌ كَسَائِرِ الدُّيُونِ ځكه چې ثمن هم د نورو ديونو (قرضونو) پشان دين صحيح دې.

تشريح:- مصنف ﷺ اوفرمائيل چه د ثمن كفيل كيدل جائز دی.دليل دادې.چه ثمن دين صحيح دې.اود كفيل نه ددې وصولول هم ممكن دی.نود نورو ديونو او قرضونو پشان ددې كفاله به هم جائز وی.

### د بائع د اړخه د مبيع دكفالت حكم

وَإِنْ تَكَفَّلَ عَنِ الْبَائِعِ بِالْمَبِيعِ اوكه د بائع د اړخه يو سړې د مبيع كفيل شو لَمْ تَصِحَّ نو صحيح نه ده. لِأَنَّهُ عَيْنٌ مَضْمُونٌ بِغَيْرِهِ وَهُوَ الثَّمَنُ ځكه چې مبيع يو عين دې.كوم چې د خپل نه علاوه يعنی د ثمن په بدله كې مضمون وی. وَالْكَفَالَةُ بِالْأَعْيَانِ الْمَضْمُونَةِ وَإِنْ كَانَتْ تَصِحُّ عِنْدَنَا خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ اود اعيان مضمونه كفاله د امام شافعی ﷫ په خلاف اګرچه زمونږ په نيز صحيح ده لَكِنْ بِالْأَعْيَانِ الْمَضْمُونَةِ بِنَفْسِهَا خود هغه اعيانو كفاله جائز ده كوم چې پخپل ذات سره مضمون وی كَالْمَبِيعِ بَيْعًا فَاسِدًا لكه د بيع فاسد په صورت كې مبيع وَالْمَقْبُوضِ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ او هغه عين كوم چې د اخستلو په طور باندې قبضه كړې شوی وی وَالْمَغْصُوبِ لَا بِمَا كَانَ مَضْمُونًا بِغَيْرِهِ اود شئ مغصوب هغه اعيانو كفاله صحيح نه ده.كوم چې د نورو څيزونو په عوض مضمون وی كَالْمَبِيعِ وَالْمَرْهُونِ لكه مبيع او شئ مرهونه،

حل اللغة: ① الشراء-اغستل-② السوم-نرخ-③ الوديعة-امانت كيخودې شوې

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه څوك سړې د بائع د اړخه د مشتری لپاره د عين مبيع كفيل شو.مثلاً كفيل مشتری ته اووئيل.كه مبيع هلاك شو.نو ددې ضامن زه يم.نودا كفاله جائز نه ده.

د نفس مسئلې د تقرير نه وړاندې زده كړه داخبره چې اعيان مضمونه په دوې (دوه) قسمه دی ① يودې مضمون بغيره د دې صورت به دا وی چې د بيع صحيح په صورت كې مبيع د بائع په قبضه كې وی دا د ثمن په عوض كې مضمون وی.يعنی بائع د مبيع ضامن د ثمن په عوض كې وی.او لكه شئ مرهون د مرتهن په قبضه كې وی نودا د پور په عوض مضمون وی.كه شئ مرهونه د مرتهن په قبضه كې هلاك شو.نو ددې په بدله كې د راهن په ذمه ددې د قيمت په اندازه قرضه ساقطيږی.حاصل داچه په بيع صحيح كې مبيع اوشئ مرهونه د خپل ذات نه علاوه دوهم شئ يعنی د ثمن او پور په عوض مضمون وی. ② دوهم ډول مضمون بنفسه دې د دې صورت به داوی چې د بيع فاسد په صورت كې د مشتری په قبضه كې مبيع او هغه شئ په كوم چې د اخستلو لپاره قبضه شوې ده.يعنی د كوم كس اراده چې د اخستلو ده.ده د بائع په اجازت يوڅيز باندې قبضه كړې ده.چه ددې نرخ دواړو بيان كړې دې.او مشتری اووئيل.كه د كور خلګو خوښ كړو.نو زه به نې ستا نه واخلم.نودې شئ ته به،، مقبوض علی سوم الشراء،، وئيلې شي.اود غاصب په قبضه كې شئ مغصوب،د مشتری په قبضه كې مبيع،او مقبوض علی سوم الشراء، مضمون بنفسه دی.په ذكرشوی صورتونوكې د شئ موجود كيدلو په صورت كې عين شئ واپس كول واجب وی.او د هلاكيدلو په صورت كې ددې قيمت كوم چې ددې قائم مقام دې.واجبيږی.

ددې تمهيد نه روسته په متن كې د ذكرشوی صورت دليل دا دې.چه د بائع د اړخه د مبيع كفيل كيدل، په دې طريقه چې كفيل مشتری ته اووائی.كه مبيع بائع سره هلاك شو.نو ددې د بدل ذمه وار زه يم.ناجائز ځكه دی.چه مبيع داسې عين دې.چه مضمون بغيره دې.يعنی د ثمن په عوض د بائع په ضمانت كې دې.او زمونږ په نيز د اعيان مضمونه بغيرها كفاله جائز نه ده.په دې وجه د بائع د اړخه د مشتری لپاره د مبيع كفيل كيدل به هم ټيك نه وی.اوكه دوهم وی.يعنی د اعيان مذكوره سپارلو كفيل كيدل،اودا اعيان واجب التسليم هم وی.مثلاً يوكس په بيع صحيح كې مشتری لپاره د بائع د اړخه د مبيع سپارلو كفيل شو.يا د مرتهن په مالی پور باندې د پور نه روسته يو سړې د شئ مرهونه راهن اړخ ته د سپارلو كفيل شو.يا شئ مستاجر په اجرت باندې اخستونكی د اړخه د سپارلو كفيل شو.نوداكفاله جائز ده.نو كه مبيع بائع سره هلاك شو.نوپه كفيل به هيڅ واجب نه وی.ځكه چې عقد



بيع فسخ شو.البته په بائع باندې به ثمن واپس كول واجب وی.دغه ډول د پور وصلولو نه روسته كه شئ مرهونه مرتهن سره هلاك شو.نو په كفيل به هيڅ واجب نه وی.البته په مرتهن باندې به د پور مال واپس كول واجب وی.په دې شرط چې د پور مال د شئ مرهونه د ماليت برابر وی.يا د شئ مرهونه ماليت د پور نه زيات وی.ځكه چې په شئ مرهونه كې د پور مقدار نه كومه برخه زياتی ده.هغه د مرتهن سره امانت ده.اود امانت هيڅ ضمان نه واجبيږی.ځكه به د شئ مرهونه د زياتی برخې (حصې) هيڅ ضمان مرتهن باندې واجب نه وی.دغه ډول كه شئ مستاجر اجرت باندې وركونكی سره هلاك شو.نو په كفيل به هيڅ واجب نه وی.ځكه چې په دې صورت كې عقد اجاره فسخ شوې ده.بهرحال كه اعيان واجب التسليم وی.نو ددې د سپارلو كفيل كيدل جائز دی.ځكه چې كفيل د داسې فعل التزام كړې دې.كوم چې پخپله اصيل يعنی مكفول عنه باندې واجب دې.چه په بائع باندې د مبيع سپارل،او مرتهن باندې د خپلې پور وصولولو نه روسته شئ مرهونه سپارل او په اجرت باندې وركونكی باندې شئ مستاجر سپارل واجب وو.نو كفيل د هغه فعل التزام كړې دې.كوم چې دده په مكفول عنه باندې واجب دې.اوكوم فعل چې په مكفول عنه باندې واجب وی.د هغې كفيل كيدل جائز دی.په دې وجه د واجب التسليم اعيانو سپارلو كفيل كيدل به هم جائز وی.

وَلَا بِمَا كَانَ أَمَانَةً اونه د هغه اعيان كفاله صحيح ده.كوم چې امانت وی كَالْوَدِيعَةِ لكه مال وديعت، وَالْمُسْتَعَارِ او شئ مستعار وَالْمُسْتَأْجَرِ اوشئ مستاجر وَمَالِ الْمُضَارَبَةِ او مال مضاربت وَالشَّرِكَةِ او مال شركت وَلَوْ كَفَلَ بِتَسْلِيمِ الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ أَوْ بِتَسْلِيمِ الرَّهْنِ بَعْدَ الْقَبْضِ إِلَى الرَّاهِنِ أَوْ بِتَسْلِيمِ الْمُسْتَأْجَرِ إِلَى الْمُسْتَأْجِرِ اوكه د قبضه نه وړاندې د مبيع سپارلو،يا د قبضه نه روسته راهن ته د رهن مال سپارلو،يا مستاجر ته د شئ مستاجر د سپارلو كفيل شو جَازَ نو جائز دی. لِأَنَّهُ الْتَزَمَ فِعْلًا وَاجِبًا ځكه چې كفيل د فعل واجب التزام كړې دې.

تشريح:- په دې عبارت كې د اعيانو د يوبل ډول بيان كوی يعنی كوم چې نه مضمون بنفسها او نه مضمون بغيرها وی يعنی هغه اعيان چې دهغې سپارل پخپله اصيل باندې واجب نه وی.لكه مال امانت، مال مضاربت، او مال شركت نو ددې د سپارلو كفيل كيدل جائز نه دی.ځكه چې مال امانت، مال مضاربت، اويه مال شركت كې د طلب په وخت دا واجب دی.چه امين صاحب مال ته، مضارب رب المال ته، او يو شريك خپل اندیوالان ته، د قبضه كاوه نه منع نكړی.اويه امين، مضارب،او شريك باندې پخپله سپارل واجب نه دی.نوهركله چې سپارل پخپله اصيل باندې واجب نه دی.نو په كفيل باندې سپارل به څنګه واجب وی.او هركله چې په كفيل باندې ددې مالونو سپارل واجب نشو.نو ددې مالونو كفاله به هم صحيح نه وی.

### د بوج اوړلو د څاروی دكفالت حكم

قَالَ وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَابَّةً لِلْحَمْلِ عَلَيْهَا اوكه يوكس د بار اوړلو لپاره حيوان (څاروی) په كرايه باندې واخستلو فَإِنْ كَانَتْ بِعَيْنِهَا كه حيوان (څاروی) معين وی لَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِالْحَمْلِ نود بار اوړلو كفالت صحيح نه دی لِأَنَّهُ عَاجِزٌ عَنْهُ ځكه چې كفيل ددې نه عاجز دې وَإِنْ كَانَتْ بِغَيْرِ عَيْنِهَا اوكه حيوان (څاروی) غير معين وی جَازَتِ الْكَفَالَةُ نو كفاله جائز ده لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْحَمْلُ عَلَى دَابَّةِ نَفْسِهِ ځكه چې د كفيل لپاره پخپل ذاتی څاروی باندې بار اوړل ممكن دی وَالْحَمْلُ هُوَ الْمُسْتَحَقُّ او واجب شوې هم باراوړل دی.

حل اللغة: ① الدابة-څاروې-② الحمل-بار-③ المستحق-واجب شوې-④ يمكن-ممكن ده

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه يوكس يو معين حيوان (څاروې) د بار اوړلو لپاره په كرايه باندې اونيولو.اويو سړې د مستاجر لپاره هم په دې معين څاروی باندې د بار اوړلو كفيل شو.نود بوج اوړلو دا كفاله به جائز نه وی.دليل دادې.چه دې په معين څاروی باندې د بوج اوړلو نه عاجز دې.اوكفيل چې د كوم كار كاوه نه عاجز وی.د هغې كفاله جائز نه وی.په دې وجه په معين څاروی باندې د بار اوړلو كفاله به هم جائز نه وی.اوكه حيوان (څاروې) غيرمعين وی.نود باراوړلو كفاله جائز ده.ځكه چې په دې كفاله سره واجب د بوج اوړل دی.اوكفيل خپل ذاتی څاروی باندې په بار اوړلو او رسولو باندې قدرت لرې ځكه به داكفاله صحيح وی.

وَكَذَا مَنِ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا لِلْخِدْمَةِ وهم دغه ډول كه يو كس د خدمت لپاره يو غلام په كرايه باندې واخستلو فَكَفَلَ لَهُ رَجُلٌ بِخِدْمَتِهِ نو يو سړى ددې مستاجر لپاره ددې غلام د خدمت كفالت اوكړو فَهُوَ بَاطِلٌ نودا باطل دې لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړو.

تشريح:- دغه ډول كه يوكس يو غلام په كرايه باندې واخستلو.او بل كس د غير معين غلام د خدمت كفيل شو.نودا كفاله جائز ده.ځكه چې په دې كفالې سره خدمت واجبيږي.او كفيل پخپل ذاتى غلام باندې په خدمت كاوه قادر دې.اوكه د معين غلام د خدمت كفيل شو.نودا كفاله صحيح نه ده.ځكه چې هركله كفيل ته د بل په غلام باندې قدرت حاصل نه دې.نودې به په دې معين غلام باندې په خدمت كاوه هم قادر نه وي.اوهر كله چې كفيل ته د مكفول به يعنى خدمت ادا كاوه باندې قدرت حاصل نه دې.نوددې كفاله به هم جائز نه وي.

## د مكفول له په مجلس كښې د كفالت قبلولو شرط

قَالَ وَلَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ اوكفاله نه صحيح كيږي إِلَّا بِقَبُولِ الْمَكْفُولِ لَهُ فِي الْمَجْلِسِ خو په مجلس كي د مكفول له په قبلولو سره وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ[1] اودا د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز دى.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.كه كفاله بالمال وي.اوكه كفاله بالنفس وي.په دواړوكي د طرفينو رحمهما الله په نيز د كفاله صحيح كيدلو شرط دادې.چه مكفول له په مجلس د كفاله كي داقبول هم كړي.كه مكفول له په مجلس د كفاله كي كفاله قبول نكړله.نوكفاله به صحيح نه وي.هم دا يو قول د امام شافعي رحمه الله دي

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ آخِرًا او امام ابويوسف رحمه الله فرمايي يَجُوزُ چې جائز ده إِذَا بَلَغَهُ په دې شرط كله چې ده ته خبر رسيدلي وي. فَأَجَازَ نو ده اجازت وركړي وى وَلَمْ يَشْتَرِطْ فِي بَعْضِ النُّسَخِ الْإِجَازَةَ او په بعض نسخوكي اجازت شرط نه دي وَالْخِلَافُ فِي الْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ وَالْمَالِ جَمِيعًا او دا اختلاف په كفاله بالنفس او كفاله بالمال دواړو كي دي.

تشريح:- د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دى.① يو روايت دادې.كه مكفول له په مجلس د كفاله كي موجود نه وي. نود كفاله جواز به دده په اجازت باندې موقوف وي.يعنى مكفول له ته چې په كوم مجلس كي د كفالې خبر اورسيدلو.كه ده هم په دې مجلس كي اجازت وركړو.نو كفاله به جائز وي.اوكه اجازت ئې ورنكړو.نو كفاله به جائز نه وي.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دى.اوهم دا يو قول د امام شافعي رحمه الله دې.② دوهم روايت دادې.چه دكفاله صحيح كيدلو لپاره د مكفول له قبلول او دده اجازت وركول شرط نه دى.يعنى كفاله به يواځې د كفيل په قول سره منعقد كيږي.د مكفول له قبلول شرط نه دى.

لَهُ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ تَصَرُّفُ الْتِزَامٍ چې عقدكفاله يو التزامى تصرف دې فَيَسْتَبِدُّ بِهِ الْمُلْتَزِمُ نو ملتزم به په دې كي مستقل وى وَهَذَا وَجْهُ هَذِهِ الرِّوَايَةِ عَنْهُ اودا د امام ابويوسف رحمه الله نه د هغه روايت وجه ده وَوَجْهُ التَّوَقُّفِ اود مكفول له په اجازت باندې د موقوف كيدلو وجه هغه ده مَا ذَكَرْنَاهُ فِي الْفُضُولِيِّ فِي النِّكَاحِ كوم چې موږ په نكاح كي د فضولي په اړه كي ذكر كړې ده.

حل اللغة: ① يستبد-مستقل-② الفضولي-دريمګړې-③ الشطر-جزء\حصه-④ وراء-علاوه\سوا

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله د دوهم روايت دليل دادې.چه عقدكفاله د كفيل خپل خان باندې د مطالبې د لازمولو د تصرف نوم دې.اوهر هغه تصرف كوم چې پخپل خان باندې لازم كړې شى.په دې كي لازمونكې مستقل او خودمختاره وى.په دې كي د بل چا اړتيا نه وي.لكه څنګه چې اقرار كونكې د شئ مقربه په اقرار كاوه كي مستقل

[1]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين كذا في الدر المختار (۲۹۹\٤) وردالمحتار (۲۹۹\٤) وجامع الوجيز (٦\٦) والبحر (٦\٢٣١) نقلاً عن القول الراجح (۲\٩٤)_



وى.د مقرله د قبلولوهيڅ اړتيا نه وي.اولكه څنګه چې نذركونكې د شئ منذور خپل خان باندې لازمولوكي مستقل وى.دچا د قبلولو اړتيا نه وي.دغه ډول به كفيل هم خپل خان باندې مطالبه لازمولوكي مستقل او خودمختار وى.په دې كي به د مكفول له د قبلولو هيڅ اړتيا نه وي.

د امام ابويوسف رحمه الله د ړومبى روايت دليل دادې.چه عقد د ايجاب او قبول د مجموعې نوم دې.نو په عقدكفاله كي به هم د كفيل د ايجاب نه روسته د مكفول له قبلول ضرورى وى چونكه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز شطرعقد يعنى قبول په ماوراء د مجلس باندې موقوف كيداې شى.لكه څنګه چې د فضولي في النكاح په بيان كي په كتاب النكاح كي تيرشوى دى .په دې وجه د مكفول له قبلول او اجازت وركول به هم په ماوراء د مجلس باندې موقوف وى.يعنى مكفول له كه د عقدكفاله په مجلس كي موجود نه وى.نو په كوم مجلس كي چې ده ته خبر اورسى.په هغې به موقوف وى.نوكه ده په دغه مجلس كي اجازت وركړو.نو كفاله به درست وى.اوكه اجازت ئې ورنكړو.نو كفاله به ټيك نه وي.

وَلَهُمَا اود طرفينو رحمهما الله دليل دادې أَنَّ فِيهِ مَعْنَى التَّمْلِيكِ چې په عقدكفاله كي د مالك كاوه معنى ده وَهُوَ تَمْلِيكُ الْمُطَالَبَةِ مِنْهُ اوهغه د كفيل د اړخه مكفول له د مطالبې مالك كول دى فَيَقُومُ بِهِمَا جَمِيعًا نودا معنى به د كفيل او مكفول له سره قائم وى وَالْمَوْجُودُ شَطْرُهُ او دلته كي موجود د هغې يو جزء دې فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ نودا به په ما وراء د مجلس باندې موقوف نه وي.

تشريح:- د طرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه په عقدكفاله كي د تمليك معنى موجود ده.په دې طريقه چې د عقدكفاله په ذريعه كفيل، مكفول له پخپل خان باندې د مطالبې مالك جوړوى.اوپه كوم شئ كي چې د تمليك معنى وى.هغه په مالك جوړونكى او مالك جوړيدونكي دواړو سره قائم وى.نو عقدكفاله به كفيل او مكفول له دواړو سره قائم وى.نوهر كله چې عقدكفاله كفيل او مكفول له دواړو سره قائم ده.نو په عقدكفاله كي به د كفيل ايجاب اود مكفول له قبول دواړه ضرورى وى.حالانكه په ذكرشوى صورت كي صرف د كفيل ايجاب موجود دې.نودا به په ماوراء د مجلس باندې موقوف نه وى.ځكه چې د طرفينو په نيزشطرعقد يعنى د عقد يوجزء په ماوراء د مجلس باندې موقوف نه وى.البته دومره خبره ضرور ده.كه د كفيل ايجاب كوم فضولي د مكفول له د اړخه په مجلس كي قبول كړو.بيا مكفول له د خبر په رسيدلو باندې اجازت وركړو.نودا بالاتفاق جائز دى.اوكه په مجلس كي هيڅ يو فضولي هم قبول نكړو.نود مكفول له اجازت به هيڅ ګټور نه وى.حاصل دادې.چه د طرفينو رحمهما الله په نيز د كفاله صحيح كيدلو لپاره د كفيل د ايجاب نه روسته هم په دې مجلس كي قبلول شرط دى.كه مكفول له قبول كړى.اوكه دده د اړخه نې څوك فضولي قبول كړى.اوكه فضولي قبول كړو.نو مكفول له ته په خبر رسيدلو باندې به دده په اجازت باندې موقوف وى.

## د ړومبۍ مسئلې نه مستثنى مسئله

إِلَّا فِي مَسْأَلَةٍ وَاحِدَةٍ مصنف رحمه الله فرمائي.سواء د يوې مسئلې نه وَهِيَ أَنْ يَقُولَ الْمَرِيضُ لِوَارِثِهِ (او هغه داده.چه مريض خپل وارث ته ووايي تَكَفَّلْ عَنِّي بِمَا عَلَيَّ مِنَ الدَّيْنِ چې ته زما د اړخه ددې پور كفيل شه كومه چې په ما باندې ده فَكَفَلَ بِهِ مَعَ غَيْبَةِ الْغُرَمَاءِ نوهغه د قرضخواهانو د غيرموجودګئ باوجود دده كفيل شو جَازَ نو جائز دى.

حل اللغة: ① الدين-قرض-② الغرماء-قرضخواهان-③ غيبة-غيرموجودګى-④ المريض-رنځور

تشريح:- وړاندې تير شوى دى.چه د طرفينو رحمهما الله په نيز د مكفول له د قبلولو نه بغير كفاله نه صحيح كيږي.خو يوه مسئله داسې ده.چه په دې كي د كفاله د صحت لپاره د طرفينو رحمهما الله په نيز هم د مكفول له په مجلس كي دننه قبلول شرط نه دى.اوهغه مسئله داسې ده.چه بيمار قرضدار خپل وارث ته اووئيل.چه ته زما د اړخه د هغه پور كفيل شه.كومه چې په ما واجب ده.نو وارث دده د اړخه ددې پور كفيل شو.حالانكه قرضخواه موجود نه دې.نودا كفاله استحساناً جائز ده.

لِأَنَّ ذٰلِكَ وَصِيَّةٌ فِي الْحَقِيْقَةِ خکه چې دا په حقیقت کې وصیت دی وَلِهٰذَا تَصِحُّ او هم په دې وجه کفاله صحیح کیږي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ الْمَكْفُوْلَ لَهُمْ اګرچه مکفول له چې کوم خلګ دي. د هغوی نوم نې هم اخستې نه وي لِهٰذَا قَالُوْا إِنَّمَا تَصِحُّ او هم په دې وجه مشائخ ﷭ فرمائي. چه دا کفاله به هغه وخت صحیح وي إِذَا كَانَ لَهُ مَالٌ کله چې د مریض سره مال وي.

**تشریح:-** وجه د استحسان دوې (دوه) دی. ① یوه داچه د بیمار مدیون قول «تکفل عني بما علي من الدین» د وصیت په معنی کې دی. یعنی د «تکفل عني» مطلب دی «اقضوا دیوني» زما دیون اداکړئ. او کله چې وارثانو «تکفلنا بها» اوونیل نو ددې مطلب دادې. چه دوی اوونیل چه موږ به ستا ټوله قرضه اداکوو. نو هر کله چې دا کفاله د وصیت په معنی کې ده. نو د قرضخواهانو به په مجلس کې دننه قبلول هم شرط نه وي. خکه چې د وصیت کیدلو لپاره ددې خلګو قبلول شرط نه دی. د چا لپاره چې وصیت شوې وي. او چونکه دا کفاله د وصیت په معنی کې ده. په دې وجه کوم خلګ چې مکفول له دی. که ددوی نومونه نې نه وي اخستې. او دوی مجهول وي. نو بیا هم دا کفاله درست ده. حالانکه وړاندې تیرشوی دی. چې د مکفول له مجهول کیدل کفاله فاسدوی. او دا وصیت چونکه د کفاله په معنی کې دې. په دې وجه مشائخ وائي. چه دا کفاله به هغه وخت صحیح وي. کله چې د مرګ په وخت د ذکرشوی بیمار سره ترکه د مال موجود وي. چه وصي یعنی وارث دده دا وصیت نافذ کړي. او که دده سره مال نه وي. نو دده د وارثانو څخه به دده قرضه نشي وصولولې. حالانکه د کفاله لپاره دا شرط نه دی. چه د مکفول عنه سره مال موجود وي. نو ثابته شوه. چه دا کفاله په حقیقت کې کفاله نه ده. بلکه د وصیت په معنی کې ده. او هر کله چې کفاله د وصیت په معنی کې ده. نو په مجلس کې دننه د مکفول لهم قبلول به شرط نه وي. خکه چې د وصیت صحیح کیدلو لپاره د موصی لهم قبلول شرط نه وي.

أَوْ يُقَالُ یا به داسې ونیلې شي إِنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَ الطَّالِبِ چې مریض د طالب (قرضخواه) قائم مقام دی لِحَاجَتِهِ إِلَيْهِ تَفْرِيْغًا لِذِمَّتِهِ خکه چې مریض ته ددې خبرې اړتیا دی. چه دده ذمه فارغ وي وَفِيْهِ نَفْعُ الطَّالِبِ او په دې کې د طالب نفع ده فَصَارَ كَمَا إِذَا حَضَرَ بِنَفْسِهِ لکه مثلاً که طالب پخپله حاضر وو.

**حل اللغة:** ① التفریغ-فارغول-② النفع-فائده-③ المساواة-برابر-④ الاجنبي-دریمګړی

**تشریح:-** د استحسان دویمه وجه داده. چه په دې مسئله کې مریض، د مکفول لهم د یو اړتیا په وجه قائم مقام دی. او هغه اړتیا د مریض ذمه د پور نه فارغ کیدل دی. او په دې قائم مقام کیدلو کې د مکفول لهم نفع هم ده. په دې طریقه چې ددوی قرضه به وصول شي. نو دا داسې شوه. لکه که مکفول لهم پخپله حاضر وو. او د مریض وارث مثلاً دده خوی ته نې ونیلی وو. چه ته د خپل مورث یعنی د خپل پلار د اړخه زما د اړخه کفیل شه. نو دا کفالت به صحیح وو. نو هر کله چې مریض د مکفول لهم قائم مقام شو. او دا نې اوونیل. نو بیا به هم کفاله صحیح وي.

وَإِنَّمَا يَصِحُّ بِهٰذَا اللَّفْظِ وَلَا يُشْتَرَطُ الْقَبُوْلُ لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّحْقِيْقُ او په دې لفظ سره د کفاله صحیح کیدل، او د قبول شرط نه کیدل خکه دی. چه ددې نه مراد تحقیق دی دُوْنَ الْمُسَاوَمَةِ ظَاهِرًا فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ نه دا چې په دې حالت کې په ظاهری طور باندې معامله معلومول (نرخ) دی فَصَارَ كَالْأَمْرِ بِالنِّكَاحِ نو دا د امر بالنکاح پشان شوه وَلَوْ قَالَ الْمَرِيْضُ ذٰلِكَ لِأَجْنَبِيٍّ او که مریض دا خبره یو اجنبی ته اوکړله اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيْهِ[1] نو په دې کې د مشائخو اختلاف دی.

[1] القول الراجح هو قول المجوزين كذا في الكفاية (٣١٥/٦) وفتح القدير (٣١٦/٦) وردالمحتار (٣٠٠/١٤) نقلاً عن القول الراجح (٩٥/٢)-



**تشریح:-** دا عبارت د یو سوال ځواب دی. سوال دادې. چه هر کله مریض د مکفول له قائم مقام دی. نو د مریض «تکفل عني بما علي من الدین» ونیلو نه روسته قبلول هم شرط کیدل پکار وو. لکه څنګه چې د مکفول له قبلول شرط دی. خکه چې وړاندې تیرشوی دی. چه د طرفینو په نیز د کفاله د صحت لپاره په مجلس د کفاله کې د مکفول له قبلول شرط دی. لکه مثلاً مشتري چاته اووائي. «بعني هذا العبد بألف درهم» نو ده اوونیل. «بعت» نو په دې سره به بیع نه منعقد کیږي. څو کله چې مشتري «قبلت» اوونیل. نو بیع به درست وي. نو هم دغه ډول دلته کې هم کفاله هغه وخت صحیح کیدل پکار دی. کله چې مریض د «تکفل عني» نه روسته «قبلت» ونیلی وي؟

ځواب ددې ځواب دادې. چه د مریض د مرض موت ښکاره حالت په دې دلالت کوي. چه مریض کفاله په متحقق طریقه باندې د منعقد کاوه اراده کړې ده. صرف نرخ بهاؤ نې مقصود نه دی. او دا داسې ده. لکه یو کس یوې ښځې ته اوونیل. «زوجي نفسك»، ته خپل خان زما په نکاح کې راکړه،، دې ښځې د دوې (دوه) ګواهانو په موجودګۍ کې «زوجت» اوونیل. یعنی،، ماخپل خان ستا په نکاح کې درکړو،، نو دا نکاح منعقد شوه. او سړي ته د قبلولو اړتیا پاتې نشو. بلکه د ښځې قول ،،زوجت،، د ایجاب او قبول دواړو قائم مقام شوې دی. خکه چې په نکاح کې تحقق نکاح مقصود وي. هسې عبث نرخ کول مقصود نه وي. نو هم دغه ډول کفاله کې هم چونکه تحقیق کفاله مقصود وي. هسې نرخ کول مقصود نه وي. په دې وجه د مریض قول «تکفل عني» د کفالې د صحت لپاره کافي وي. د مکفول له د اړخه مستقل د قبلولو اړتیا نه وي. په خلاف د بیع. خکه چې په بیع کې نرخ کولې شي. نو د مشتري قول «بعني هذا العبد بألف درهم» به دده د قبول قائم مقام نه وي. او که مریض د وارث نه علاوه یو اجنبي سړي ته داسې کلام اوکړو. نو په دې کې د مشائخو اختلاف دی. بعض وائي. چه دا به د کفاله قبلولو نه بغیر ټیک نه وي. او بعض وائي. ټیک ده.

### د مړي د قرضخواهانو لپاره د کفیل جوړیدلو حکم

قَالَ فرمایي وَإِذَا مَاتَ الرَّجُلُ او که یو سړی مړ شو وَعَلَيْهِ دُيُوْنٌ حالانکه په ده باندې پور دی وَلَمْ يَتْرُكْ شَيْئًا او ده هیڅ مال نه دی پرینښودی فَتَكَفَّلَ عَنْهُ رَجُلٌ لِلْغُرَمَاءِ بیا د مړي د اړخه یو سړي د قرضخواهانو لپاره کفیل شو لَمْ تَصِحَّ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ[1] نو د امام ابوحنیفه ﷫ په نیز دا کفاله صحیح نه ده.

**حل اللغة:** ① الرجل-سړی-② الترک-پریخودل-③ الغرماء-جمع د غریم، قرضخواه-④ یصح-صحیح کیږي

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې. چه یو سړی چې په ده باندې د خلګو قرضه ده. مفلس (فقیر) مړ شو. یعنی ده په ترکه کې هیڅ مال پرې نخودلو. او نه دده د اړخه وړاندې نه څوک کفیل موجود دی. بیا ددې مړي د اړخه یو کس کفیل شو. هغه سړی که د مړي وارث وي. او که اجنبي وي. نو په داسې صورت کې د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز کفاله صحیح نه ده.

وَقَالَا: تَصِحُّ او صاحبین ﷬ فرمائي. چه صحیح ده لِأَنَّهُ كَفَلَ بِدَيْنٍ ثَابِتٍ خکه چې دې ددا سې پور کفیل شوې دی. کوم چې ثابت ده لِأَنَّهُ وَجَبَ لِحَقِّ الطَّالِبِ خکه چې قرضه د مړي په ژوند کې د مکفول له د حق په وجه واجب شوې وه وَلَمْ يُوْجَدِ الْمُسْقِطُ او ددې ساقطونکې هیڅ امر او نه موندې شو وَلِهٰذَا يَبْقٰى فِيْ حَقِّ أَحْكَامِ الْآخِرَةِ او هم په دې وجه دا د آخرت په احکامو کې پاتې کیږي وَلَوْ تَبَرَّعَ بِهِ إِنْسَانٌ او که ددې پور په اداکولو کې کوم یو انسان تبرع اوکړله يَصِحُّ نو صحیح

[1] القول الراجح هو هذا قول الإمام ﷫ كما ظهر من دأب المصنف ﷫ وأيضاً من صنع صاحب الملتقى كذا في القول الراجح (٩٦/٢)-

ده وَكَذَا يَبْقَى او هم دغه ډول دا قرضه هغه وخت پاته کیږي إِذَا كَانَ بِهِ كَفِيلٌ أَوْ مَالٌ کله چې ددې پور څوك کفیل وي.یا د مړي څه مال وي.

حل اللغة: ① المسقط-ساقطونکي-② التبرع-احسان-③ يبقى-پاته کیږي-④ ثابت-متحقق

تشريح:- اود صاحبینو رحمهما الله په نیز صحیح ده.د امام مالك، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله هم دا قول دي.
دلیل دادې.چه دا سړې دداسې دین صحیح کفیل شوې دې.کوم دین چې د مکفول عنه یعنی د مړي په ذمه کې ثابت دې.اود داسې دین صحیح کفاله کومه چې د مکفول عنه په ذمه ثابت وي.بالاتفاق صحیح وي.نودا کفالة به هم صحیح وي.د مړي په ذمه چې کوم دین دې.هغه صحیح څکه دې. چې مسئله په دین صحیح کې فرض شوې ده.او ثابت او قائم څکه ده.چه د مړي په ژوند کې د قرضخواهانو د حق په وجه مړي باندې دین واجب شوې وو.او کوم دین چې واجب وي.دا هغه وخت پورې نه ساقطیږي.ترکوم وختنه پورې چې درې خبروکې یوه خبره اونه مونډلې شي.① یاخو صاحب حق یعنی قرضخواه، قرضدارې بری کړي.② یا من علیه الحق یعنی قرضدار پور اداکړي.③ یاد کوم سبب په وجه چې دین واجب شوې وو.هغه سبب فسخ شي.اود قرضدارې دمرګ په وجه درې وارِه خبروکې هیڅ خبره نه ده مونډلې شوې.څکه چې مسئله په دې صورت کې فرض کړې شوې ده.چه نه خو قرضخواه قرضدار د پور نه بری کړې وي.اونه قرضدارې قرضه اداکړې وي.اونه د پور د وجوب سبب فسخ شوې وي.نو هرکله چې د پور ساقطونکی ذکرشوې درې وارِه خبروکې هیڅ یوه خبره اونه مونډلې شوه. نود مړي د ذمې څخه به پور نه ساقطیږي.او هرکله چې د مړي د ذمې نه قرضه ساقط نشوه.نو معلومه شوه.چه د مړي په ذمه قرضه ثابت او قائم ده.اود پور ساقطونکی ذکرشوی درې وارِه خبروکې چونکه هیڅ یوه خبره نه ده موجود شوې.په دې وجه د آخرت په احکاموکې د مړي په ذمه پور پاته کیږي.نو دنیاوی اعتبار سره به هم د مړي په ذمه قرضه پاته وي.

د مړي په ذمه د دنیاوی احکامو په حق کې د پور په ثبوت باندې یو دلیل دادې.که یوسړی د مړي قرضه تبرعاً اداکړله.نودا اداکول صحیح دی.نوکه مدیون مفلس د مرګ په وجه د پور نه بری کیدلو.او دده په ذمه پور پاته نه پاتې کیدلو.نود قرضخواه لپاره به تبرعاً د قرضه اداکونکی نه د پور مال اخستل حلال او صحیح نه وو.

وَلَهُ اود امام صاحب رحمه الله دلیل دادې أَنَّهُ كَفَلَ بِدَيْنٍ سَاقِطٍ چې دې دداسې پور کفیل شوې دې.کومه چې ساقط ده لِأَنَّ الدَّيْنَ هُوَ الْفِعْلُ حَقِيقَةً څکه چې دین خو په حقیقت کې فعل دې وَلِهَذَا يُوصَفُ بِالْوُجُوبِ او هم په دې وجه دا وجوب سره موصوف کولې شي.

تشريح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چې د دین او پور کفیل کیدلو شرط دادې.چه قرضه د اصیل (مکفول عنه) په ذمه ثابت او قائم وي.حالانکه دلته یعنی د مفلس مړي په ذمه دین ثابت نه دې.بلکه ساقط دې.اود مړي د ذمه نه دین څکه ساقط دې.چه دین په حقیقت کې مال نه وي.بلکه فعل ادا یعنی د پور اخستلو.اود مال مالك کولو.اود سپارلو د فعل نوم دین دې.او دین چونکه د فعل ادا نوم دې.په دې وجه دین د وجوب سره متصف کیږي.لکه چې ونیلې شي. «الدين واجب» لکه چې «الصلاة واجبة» ونیلې شي.څکه چې واجبیدل یا مستحب کیدل د فعل صفت وي.د اعیان صفت نه وي.او وجوب د افعالو صفت څکه وي.چه وجوب ددې فعل خاص کاوه نوم دې.کومه چې ددې خبرې تقاضا کوي.چه فاعل به په ده باندې د خلل واقع کاوه په صورت کې د ګناه او مذمت مستحق وي.او دا خبره په افعالو کې متصور کیږي.خو په اعیانو کې نه متصورکیږي.څکه چې اعیان د بنده ګانو د قدرت لاندې نه داخلیږي.نود بنده ګانو د اړخه ددې په حاصلولوکې خلل واقع کول هم نه متصور کیږي.او په ذکرشوې مسئله کې د فعل ادا اود مال مالك کاوه د فعل نه علاوه هیڅ فعل داسې نشته.چه وجوب سره موصوف کړې شي.نو ثابته شوه.چه دین د مال نوم نه دې.بلکه د فعل ادا یعنی د مال مالك کاوه اود سپارلو نوم دین دې.نوهرکله چې ثابته شوه.چه دین په حقیقت کې د فعل نوم دې.نودا فعل به د قدرت محتاج وي.څکه چې د قدرت نه بغیر د فعل وجوب، تکلیف عاجز او تکلیف مالا یطاق دې.حالانکه د



عاجز مکلف کول، او انسان د داسې څیزونو مکلف کول، کوم چې دده په قدرت او توان کې نه وي محال دی.بهرحال فعل ادا د قدرت محتاج دې.او دلته کې قدرت موجود نه دې.څکه چې مفلس مړې نه خو پخپله په فعل ادا باندې قادر دې.اونه خپل خلیفه او نائب سره قادر دې.بذات خود نه قادرکیدل خو ښکاره دی.او خلیفه او نائب سره نه قادرکیدل څکه دی.چه ده څه داسې کفیل نه دې جوړکړې.کوم چې دده د اړخه اداکړي.
او پاتې شو وارث،نو ده ته د مفلس مورث د مرګ په وخت، د دین ادا کاوه دشریعت د اړخه هیڅ امر نه کیږي.نوهرکله چې مدیون یعنی مفلس مړې نه پخپله فعل اداباندې قادر دې.اونه د خپل نائب یعنی کفیل سره قادر دې.اونه خپل وارث سره قادر دې.نودې د فعل ادا نه بالکل عاجز شوې دې.او هرکله چې مدیون یعنی مفلس مړې د فعل ادا نه عاجز دې.نود نتیجې په طور د قرضخواه دده نه دین وصولول هم فوت شو.اوکله چې د قرضخواه خپل دین وصولول فوت شو.نو ضرورةً د دنیاوی احکامو په اعتبار سره د مړي د ذمې نه دین ساقطیږي.او هرکله چې د دنیاوی احکامو په حق کې دمفلس مړي نه دین ساقط شو.نو دده کفالة به هم درست نه وي.څکه چې د دین نه بغیر کفاله نه صحیح کیږي.نو ثابته شوه.چه د مفلس مړي د اړخه کفاله نه صحیح کیږي.

لَكِنَّهُ فِي الْحُكْمِ مَالٌ خو په حکم کې دا مال دې لِأَنَّهُ يَئُولُ إِلَيْهِ فِي الْمَآلِ څکه چې د آخري انجام په اعتبار سره دا هم دده اړخ ته واپس کیږي الْمَوْتُ عَجْزٌ بِنَفْسِهِ وَبِخَلَفِهِ او مړې پخپله هم عاجز شو.اود خلیفه په ذریعه هم عاجز شو فَفَاتَ عَاقِبَةُ الِاسْتِيفَاءِ نود وصولولو انجام فوت شو فَيَسْقُطُ ضَرُورَةً نو ضرورةً (په دنیاکې هم) ساقط شو.

حل اللغة: ① يئول-واپس کیږي-② المال-آخر-③ الاستيفاء-حاصلول-④ يسقط-ساقطیږي

تشريح:- دا عبارت د یوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه مال هم وجوب سره متصف کیږي.لکه چې ونیلې شي. «المال واجب» او په فلانی باندې زر روپۍ واجب دی.حالانکه تاسو فرمائیلی دی.چه وجوب د افعالو وصف وي.د اعیانو نه وي؟
ځواب ددې ځواب دادې.چه د مایئول په اعتبار سره مال ته هم مجازاً دین ونیلې شي.په دې وجه مال هم وجوب سره موصوف کیږي.یعنی دین خود فعل ادا نوم دې.خو چونکه د انجام کار په اعتبار سره د فعل ادا په نتیجه کې مال حاصلیږي.په دې وجه مجازاً وجوب سره موصوف کولوکې هم څه باك نشته.

وَالتَّبَرُّعُ لَا يَعْتَمِدُ قِيَامَ الدَّيْنِ او تبرع کول په قیام دین باندې موقوف نه دې وَإِذَا كَانَ بِهِ كَفِيلٌ هرکله چې د پور کفیل موجود دې أَوْ لَهُ مَالٌ فَخَلَفُهُ یا د مړي مال موجود دې أَوِ الْإِفْضَاءُ إِلَى الْأَدَاءِ بَاقٍ یا د مړي خلیفه یا ادا کاوه پورې رسیدل پاته دی.

تشريح:- دا عبارت د صاحبینو رحمهما الله د مستدلاتو ځواب دې. فرمائي.چه د مفلس مړي د اړخه تبرعاً دین اداکول صحیح کیدل،ددې خبرې دلیل نه دې.چه د مفلس مړي په ذمه دین ثابت نه دې.څکه چې تبرع (احسان) کول په دې موقوف نه وي.چه د مکفول عنه په حق کې دین موجود وي.بلکه په دې موقوف وي.چه پخپله د تبرع کونکی یعنی د کفیل په حق کې دین موجود وي.که خالد اووئیل.چه د حامد په شاهد باندې زر روپۍ پور دی.او زه ددې کفیل یم.اومکفول عنه یعنی شاهد انکار اوکړو.نودا کفالة به درست وي.او په کفیل یعنی په خالد به زر روپۍ ادا کول واجب وي.حالانکه دلته کې دین بالکل موجود نه دې.نو معلومه شوه.چه د تبرع کاوه لپاره د مکفول عنه په ذمه دین ثابتیدل ضروری نه دې.اوهرکله چې د تبرع کاوه لپاره د مکفول عنه په ذمه دین ثابتیدل ضروری نه دی.نود مفلس مړي د اړخه تبرعاً دین ادا کاوه صحیح کیدل به ددې خبرې دلیل نه وي.چه د مفلس مړي په ذمه دین ثابت دې.اود صاحبینو رحمهما الله د دوهم مستدل «وكذا يبقى إذا كان به كفيل أو مال» ځواب دادې.چه قدرت د فعل اداشرط دې.که مکفول عنه بذات خود قادر وي.اوکه د خپل نائب او خلیفه په ذریعه قادر وي.نوکه د مړي د مخکې نه کفیل موجود وي.یا د مړي متروکه مال موجود وي.نو مړې یعنی مکفول عنه اګرچه پخپله په ادا د فعل باندې قادر نه دې.خود خپل خلیفه یعنی کفیل یا د مال متروکه په ذریعه په فعل ادا باندې قادر دې.په دې طریقه

که د مخکې نه کفیل موجود وی.نو دین به د کفیل نه وصولولې شی.او که کفیل موجود نه وی.بلکه مال متروکه موجود وی.نود ترکه د مال څخه به دین وصولولې شی.نوهرکله چې په دې دواړو صورتونوکې قدرت اوموندې شو.نوپه مفلس مړی باندې به په دې دواړو صورتونوکې دین ( فعل ادا) ثابت وی.او په کوم صورت کې چې نه د وراندې نه د مړی کفیل وی.اونه دده سره مال موجود وی.نو په دې صورت کې به مړې نه بذات خود قادر وی.اونه به د خپل خلیفه په ذریعه قادر وی.اوهرکله چې مړی ته په هیڅ طریقه قدرت حاصل نشو.نو دده په ذمه به دین ثابت نه وی.بلکه دین به ساقط وی.اود دین ساقط کفاله نه صحیح کیږی.په دې وجه په دې صورت کې به کفاله درست نه وی.

### قرضدار لپاره کفیل ته ادا شوې مال د واپس اخستلو حکم

📖 **قَالَ** فرمایې **وَمَنْ كَفَلَ عَنْ رَجُلٍ بِأَلْفٍ عَلَيْهِ بِأَمْرِهِ** او که یوکس د یو سړی د اړخه د یو زر درهم کوم چې په ده باندې پور دی دده په حکم سره کفیل شو **فَقَضَاهُ الْأَلْفَ** نو قرضدار یو زر درهم کفیل ته ورکړې **قَبْلَ أَنْ يُعْطِيَهُ صَاحِبُ الْمَالِ** مخکې ددې نه چې کفیل ئې صاحب مال ته اداکړی **فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا** نو قرضدار ته به د یو زر درهم د کفیل نه واپس اخستلو اختیار نه وی.

حل اللغة: ① القضاء-روکول-② الاعطاء-ورکول-③ التعجیل-وړاندې والې-④ الساعی-عامل د صدقو

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه په یوکس زر درهم پور دی.ده دوهم سړی ته اووئیل.ته زما د اړخه ددې کفیل شه.دې د مکفول له لپاره دده د اړخه کفیل شو.بیا مکفول عنه یعنی قرضدار زر درهم کفیل ته ورکړلې.حالانکه اوسه پورې کفیل، مکفول له یعنی قرضدار ته زر درهم نه دی ورکړې.نواوس که مکفول عنه کفیل نه زر درهم واپس اخستل اوغواړی.نو مکفول عنه ته به دا اختیار نه وی.مثلاً شاهد باندې د حامد زر درهم پور دی.او شاهد خالد ته اووئیل.چه ته زما د اړخه حامد لپاره ددې دراهمو کفالت اوکړه.نو خالد حامد لپاره د شاهد د اړخه د زر درهمو کفیل شو.بیا ددې نه وړاندې چې خالد حامد ته زر درهم اداکړی. شاهد خالد ته زر درهم ورکړل.اوس که شاهد د خالد نه خپل ورکړې شوی زر درهم واپس اخستل اوغواړی.نو شاهد ته به دا اختیار نه وی.

**لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْقَابِضِ عَلَى احْتِمَالِ قَضَائِهِ الدَّيْنَ** ځکه چې د قابض حق یو زر درهم سره دده د دین ادا کاوه احتمال باندې متعلق شوی دی **فَلَا يَجُوزُ الْمُطَالَبَةُ مَا بَقِيَ هٰذَا الْاِحْتِمَالُ** په دې وجه ترکومه پورې چې دا احتمال پاته دې.د کفیل څخه به د واپسئ مطالبه جائز نه وی **كَمَنْ عَجَّلَ زَكَاتَهُ** لکه مثلاً چې څوك ددې زکاة وړاندې کړی **وَدَفَعَهَا إِلَى السَّاعِي** او ساعی ته ئې ورکړی

تشریح:- دلیل دادې.چه دې زر درهمو سره د کفیل حق متعلق شوې دې.ځکه ډیره ممکن ده.چه کفیل د مکفول عنه د اړخه قرضه ادا کړې وی.حاصل داچه زر درهم کوم چې د کفیل په قبضه کې تلې دی.ددې نه روسته دوې (دوه) احتماله دی.① یو داچه اوسه پورې کفیل مکفول له ته قرضه اداکړې نه ده.② دوهم داچه شاید اداکړې ئې وی.د رومبی احتمال په بنا (بنیاد) باندې د کفیل حق زر درهم سره متعلق نشو.او هرکله چې دې زر درهمو سره د کفیل حق متعلق نشو.نو مکفول عنه ته د خپل ورکړې شوې مال واپس اخستلو اختیار دې.اود دوهم احتمال په بنا (بنیاد) باندې د کفیل حق متعلق کیږی.اوهرکله چې د کفیل حق زر درهم سره متعلق شو.نو مکفول عنه ته به د واپس اخستلو اختیار نه وی.نوکومه پورې چې دا احتمال پاته وی.د هغه وخته پورې به مکفول عنه ته د کفیل نه د واپس اخستلو اختیار نه وی.اودا احتمال به په هغه صورت کې باطل وی.کله چې مکفول عنه بذات خود مکفول له ته پور اداکړی.ځکه کله چې مکفول عنه پخپله خپل پور اداکړو.نود کفیل حق به دې زر درهمو سره نه متعلق کیږی.کوم زر چې مکفول عنه کفیل ته ادا کړې وو.اوهرکله چې په دې صورت کې د کفیل حق متعلق نشو.نو مکفول عنه ته به د واپس اخستلو کُلی اختیار هم حاصل وی.او ددې مثال داسې دې.لکه چې یو سړی خپل د زکاة مال د حولان حول نه مخکې ورکړو.او ساعی ( زکاة وصولونکی) ادا کړو. نو صاحب مال ته به د زکاة دا مال د ساعی نه د واپس اخستلو اختیار نه وی.ځکه چې قابض یعنی د ساعی حق ددې سره په دې معنی متعلق شوې



دې چه شاید کال په داسې حالت کې پوره شوې وی.چه دده نصاب کامل وی.نو کومه پورې چې دا احتمال موجود دې.صاحب مال ته د ساعی نه د زکاة مال واپس اختیار نه وی.

**وَلِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالْقَبْضِ** او ځکه چې په قبضه کاوه سره کفیل د دې مالك شو **عَلَى مَا نَذْكُرُ** لکه چې موږ به ئې ذکرکړو **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الدَّفْعُ عَلَى وَجْهِ الرِّسَالَةِ** په خلاف ددې کله چې کفیل ته ورکول د قاصد په طور وی **لِأَنَّهُ تَمَحَّضَ أَمَانَةً فِي يَدِهِ** ځکه چې دا مال دده په قبضه کې خالصة امانت دې.

حل اللغة: ① الرسالة-قاصد کیدل-② تمحض-صرف-③ ید-قبضه-④ وجه-طریقه

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه کفیل په زر درهمو باندې د قبضې کاوه په وجه ددې مال شوې دې.لکه چې یوڅو کرخې روسته ذکر دی.اودا خبرې د منلو شوو ( خبرو) څنې ده.چه هیڅ سړې ته دچا مملوکه شئ واپس اخستلو اجازت نه وی.په دې وجه مکفول عنه ته به هم کفیل نه د زر درهم واپس اخستلو اجازت نه وی.البته که مکفول عنه کفیل صرف قاصد او ایلچی جوړ کړې وی.او زر درهم ئې ورکړې وی.او دا ئې وئیلی وی.چه دا زر درهم زما د اړخه مکفول له ته ورکړه.نو په دې صورت کې دا زر درهم د کفیل په قبضه کې امانت دې.اود امانت مال واپس اخستل هروخت جائز دی.نو په دې صورت کې مکفول عنه لپاره جائز وی.چه د کفیل نه خپل ورکړې شوې زر درهم واپس واخلی.

### کفیل لپاره د وصول شوې مال نه د نفع حاصلولو حکم

**فَإِنْ رَبِحَ الْكَفِيلُ فِيهِ** او که کفیل په مقبوضه مال کې نفع حاصل کړله **فَهُوَ لَهُ** نو دغه نفع به د کفیل لپاره وی **لَا يَتَصَدَّقُ بِهِ** کفیل به دا نه صدقه کوی **لِأَنَّهُ مَلَكَهُ حِينَ قَبَضَهُ** ځکه چې کوم وخت کفیل په دې باندې قبضه اوکړله.نوهغه ددې مالك شو **أَمَّا إِذَا قَضَى الدَّيْنَ فَظَاهِرٌ** بهرحال کله چې ده قرضه اداکړې وی.نو ښکاره ده.

حل اللغة: ① الربح-گټه-② حین-وخت\کله-③ الدین-قرض-④ قضی-ادا کړو

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که کفیل د مکفول عنه د اړخه مکفول له ته د پور مال اداکړې نه وی.او مکفول عنه کفیل ته پور ادا کاوه لپاره زر درهم ورکړې وی.بیا کفیل ددې زر درهمو په ذریعه تجارت وغیره سره نفع حاصل کړله.نودا نفع به کفیل لپاره حلال وی.او ددې صدقه کول به کفیل لپاره واجب نه وی.

دلیل دادې.چه کفیل په زر درهم باندې د قبضه کاوه په وجه ددې مالك شوې دې.نو کفیل چې کومه نفع حاصل کړې ده.د خپل ملك نه ئې حاصل کړې ده.اوکومه نفع چې د خپل ملك نه حاصل کړې شی.هغه د حاصلونکی لپاره حلال او طیب وی.په دې وجه به دا نفع هم کفیل لپاره حلال او طیب وی.

پاتې شوه داخبره چې کفیل په زر درهمو باندې د قبضه کاوه په وجه ولې مالك کیږی؟ نو ددې وجه داده.چه د مکفول له قرضه به کفیل ادا کوی.یا به مکفول عنه ادا کوی.که د مکفول له قرضه کفیل اداکړې ده.نود مکفول عنه د ورکړې شوی زر درهمو باندې قبضه کاوه په وجه د کفیل مالك جوړیدل ښکاره دی.ځکه چې کفیل په هغه مال باندې قبضه کړې ده.کوم چې د کفیل د کفاله په وجه په مکفول عنه باندې واجب شوې وو.اوکوم سړې چې په داسې مال باندې قبضه اوکړی.کوم مال چې دده په بل باندې واجب وو.نو قبضه کونکې په قبضه کاوه سره ددې مال مالك کیږی.

**وَكَذَا إِذَا قَضَى الْمَطْلُوبُ بِنَفْسِهِ** دغه ډول که مکفول عنه پخپله ادا کړې وی **وَثَبَتَ لَهُ حَقُّ الِاسْتِرْدَادِ** او ده ته د واپس اخستلو حق حاصل شوې وی **لِأَنَّهُ وَجَبَ لَهُ عَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ مِثْلُ** ځکه چې د کفیل لپاره په مکفول عنه باندې هم ددې په مثل واجب شوی دی **مَا وَجَبَ لِلطَّالِبِ عَلَيْهِ** کوم چې د مکفول له په کفیل باندې واجب وو **إِلَّا أَنَّهُ أُخِّرَتِ الْمُطَالَبَةُ إِلَى وَقْتِ الْأَدَاءِ** مگر داچه مطالبه د ادا کاوه وخت پورې موخر کړې شوې ده **فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الدَّيْنِ الْمُؤَجَّلِ** نود کفیل حق د میعادی پور په مرتبه کې راکښته کړې شوې دې.

حل اللغة: ① المطلوب-مکفول عنه-② الاسترداد-واپس اخستل-③ منزلة-درجه-④ المؤجل-نیتیه شوې

تشریح:- اوکه د مکفول له قرضه مکفول عنه اداکړې وي.او مکفول عنه ته د کفیل نه د هغه زر درهمو واپس اخستلو حق وي. کوم چې ده کفیل ته د پور ادا کاوه لپاره ورکړي وو.نو بیا به هم کفیل په قبضه کاوه سره د زر درهمو مالك کیږي.

څکه چې د کفالة په وجه کفیل لپاره په مکفول عنه باندې ددې د مثل د دین مطالبه واجبیږي.لکه څنګه چې مکفول له لپاره کفیل باندې واجبیږي.صرف دومره خبره ده.چه مکفول له ته فی الحال د مطالبې حق حاصل دې او کفیل ته د پور ادا کاوه نه روسته دا حق حاصلیږي.یعنی کفیل د مکفول عنه نه هغه وخت مطالبه کولې شي.کله چې ئې مکفول له ته اداکړي.خو په دې تاخیر سره دا نه لازمیږي.چه د کفیل په مکفول عنه باندې حق هم واجب نه وي.بلکه حق خو په کفالة کاوه سره واجبیږي.صرف مطالبه نشي کولې.لکه څنګه چې قرضخواه د خپلې میعادي پور مطالبه فی الحال نشي کولې.نود کفیل چې په مکفول عنه باندې کوم حق دې.هغه د دین مؤجل یعنی د میعادي پور په مرتبه کې راګښته کړې شوې دې.اوپه میعادي قرضه کې که قرضدار د میعاد نه وړاندې قرضه ورکړله.نو قرضخواه قبضه کاوه سره مالك کیږي.دغه ډول کله چې مکفول عنه کفیل ته د مطالبې د وخت نه وړاندې ورکړو.نو کفیل به په قبضه کاوه سره مالك کیږي.او چونکه صرف د کفالة په وجه د کفیل په مکفول عنه باندې د دین مطالبه واجبیږي.اګرچه دا مطالبه د پور ادا کاوه پورې مؤخر کیږي.

وَلَوْ أَدَّاهُ الْكَفِيلُ الْمَطْلُوبَ قَبْلَ أَدَائِهِ اوهم په دې وجه که کفیل د ادا کاوه نه وړاندې مکفول عنه بري کړو بَصَحُّ نو صحیح ده فَكَذَا إِذَا قَبَضَهُ يَمْلِكُهُ نوهم دغه ډول که کفیل په دې قبضه اوکړي.نو ددې مالك کیږي هم. إِلَّا أَنْ فِيهِ نَوْعَ خُبْثٍ مګر داچه په دې کې یو ډول خبث دې نُبَيِّنُهُ چې دا به موږ بیان کړو فَلَا يَعْمَلُ مَعَ الْمِلْكِ په دې وجه دا خبث د ملکیت باوجود به په داسې شي کې نه مؤثر کیږي فِيمَا لَا يَتَعَيَّنُ کوم چې نه متعین کیږي وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او موږ دا په کتاب البیوع کې بیان کړي دي.

تشریح:- هم په دې وجه که کفیل د مکفول له قرضه ادا کاوه نه وړاندې مکفول عنه بري کړو.نودا بري کول صحیح دي.یعنی کفیل مکفول عنه د خپل حق نه وړاندې معاف کړو.او بیا ئې ده دا رخه قرضه اداکړله.نودا صحیح ده.نود پور ادا کاوه نه وړاندې د کفیل مکفول عنه د خپل حق نه بري کول صحیح کیدل ددې خبرې دلیل دې چه په نفس کفالة سره د کفیل په مکفول عنه باندې حق واجبیږي.او هرکله چې په نفس کفالة سره د کفیل په مکفول عنه باندې حق واجبیږي.نوکه کفیل د پور ادا کاوه نه وړاندې پخپل دې حق باندې قبضه اوکړي.نو په قبضه کاوه سره به ددې مالك کیږي.څکه چې ده پخپل حق باندې قبضه کړې ده.بهرحال مکفول له ته کفیل پور اداکړي.یائې مکفول عنه اداکړي.دواړو صورتونوکې کفیل ددې زر درهمو مالك کیږي.کوم زر درهم چې مکفول عنه کفیل ته د پور ادا کاوه لپاره ورکړي دي.او هرکله چې کفیل ددې زر درهمو مالك شو.نو ده چې کومه نفع حاصل کړې ده.د خپل ملك نه ئې حاصل کړې ده.اوکومه نفع چې د خپل ملك نه حاصلولې شي.هغه چونکه د خپل حاصلونکي لپاره حلال وي. په دې وجه به د کفیل لپاره هم ذکرشوي زر درهمو نه حاصل شوې نفع حلال او طیب وي.

تشریح:- البته دومره خبره ضرور ده.که د مکفول له قرضه مکفول عنه اداکړله.اوکفیل په دې زر درهمو کې دتجارت په ذریعه نفع حاصل کړې وي.کوم زر درهم چې مکفول عنه کفیل ته د پور ادا کاوه لپاره ورکړي وو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب مطابق په دې نفع کې یو ډول خبث دې.لکه څنګه چې به راروانه مسئله کې به بیان شي.خودا خبث په داسې شي کې نه مؤثر کیږي.کوم چې په متعین کاوه سره نه متعین کیږي.او ددې مالك وي.لکه څنګه چې په دې مسئله کې زر درهم قابل تعین نه دي.نو کفیل چې ددې نه کومه نفع حاصل کړې ده.هغه نفع به ده لپاره حلال او طیب وي.اوکوم شي چې په متعین کاوه سره متعین کیږي.او ددې مالك هم وي.په هغې کې خبث مؤثر کیږي.لکه چې ددې تفصیل په راروانه مسئله کې ذکر دې.او ددې پوره تفصیل د بیع فاسد داحکامو د فصل لاندې تیرشوې دې.



## کفیل لپاره د وصول شوي غلې نه د نفع حاصلولو حکم

وَلَوْ كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِكُرِّ حِنْطَةٍ اوکه د یوکُر غنمو کفالة وي فَقَبَضَهَا الْكَفِيلُ بیا په دې باندې کفیل قبضه اوکړله فَبَاعَهَا نودا ئې خرڅ کړل فَرَبِحَ فِيهَا اوپه دې کې ئې نفع حاصل کړله فَالرِّبْحُ لَهُ فِي الْحُكْمِ نودا نفع به قضاءً د کفیل لپاره وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو أَنَّهُ مَلَكَهُ چې کفیل ددې مالك شوې دې قَالَ وَأَحَبُّ إِلَى امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي.چه ماته دا خبره خوښه ده أَنْ يَرُدَّهُ عَلَى الَّذِي قَضَاهُ الْكُرَّ چې دا نفع هم هغه کس ته واپس کړي.چاچه ده ته یو کُر غنم ورکړي وو وَلَا يَجِبُ عَلَيْهِ فِي الْحُكْمِ خو حکماً په ده باندې واپس کول واجب نه دي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي رِوَايَةِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ دا حکم د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د جامع صغیر په روایت کې ذکر دې.

حل اللغة: ① حنطة-غنم-② الربح-ګټه-③ یتصدق-صدقه کوي-④ الخبث-مرداري \ حرمت

تشریح:- په مخکنۍ مسئله کې د ذکرشوې نفعې حکم په دې صورت کې وو چې نفع په داسې مال کې وي کوم چې په متعین کاوه سره نه متعین کیږي او په دې خانې کې دهغه نفع حکم ذکر کولای شي کومه چې په داسې مال کې وي کوم چې په متعین کاوه سره متعین کیږي. نو اوس صورت د مسئلې دادې.که کفالة د داسې شي وي.کوم چې په متعین کاوه سره متعین کیږي.مثلاً یوسړې د یوکُر غنمو کفیل شو.بیا مکفول عنه کفیل ته یو کُر غنم قرضه ادا کاوه لپاره ورکړل.حالانکه تراوسه پورې کفیل د مکفول عنه د اړخه د مکفول له قرضه نه ده اداکړې.نوکفیل په دې یوکُر غنمو تجارت اوکړو.او نفع ئې حاصل کړله.نو په دې اړه کې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه درې روایتونه دي.

د جامع صغیر روایت دادې.چه حاصل شوې نفع د کفیل لپاره ده.بیا مصنف رحمه الله په «قال أحب الی» سره د امام ابوحنیفه رحمه الله قول ذکر کوي چې ماته خوښه خبره دا ده.چه کفیل پخپل ملك کې نفع حاصل کړې ده.اوکوم کس چې پخپل ملك کې نفع حاصل کړي.هغه نفع هم دده وي.نود یوکُر غنمو نه چې کفیل کومه نفع حاصل کړې ده.هغه به هم دده وي.نه په ده باندې ددې صدقه کول واجب دي.اونه مکفول عنه ته ورکول واجب دي.ددې دلیل تفصیل د تیرې شوې مسئلې لاندې تیر شوې دي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللَّهُ او امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائي هُوَ لَهُ وَلَا يَرُدُّهُ عَلَى چې دا نفع د کفیل لپاره ده.نودا به په هغه کس باندې هم نه واپس کوي الَّذِي قَضَاهُ چاچه ده ته یو کُر غنم ورکړي وو وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ او هم دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې.

تشریح:- په دې عبارت کې د مبسوط د کتاب البیوع دوهم روایت منقول دې.چه حاصل شوې نفع د کفیل لپاره ده.کفیل به نه دا صدقه کوي.اونه به ئې مکفول عنه ته واپس کوي.هم دا د صاحبینو رحمهما الله مذهب دې. نود جامع صغیراو د مبسوط د کتاب البیوع روایت تردې حده پورې متفق دي چې ګټه د کفیل ده په نه صدقه واجب ده او نه مکفول عنه ته واپس کول واجب دي البته توپیر صرف په دې کې دې چې د جامع صغیر په روایت کې مکفول عنه ته د ګټې واپس کاوه ته مستحب ونیلې شوې دې اود مبسوط د کتاب البیوع په روایت کې استحباب نشته

وَعَنْهُ اود امام صاحب رحمه الله نه یو روایت دادې أَنَّهُ يَتَصَدَّقُ بِهِ چې دا نفع صدقه کړي.

تشریح:- په دې عبارت کې اود مبسوط د کتاب الکفالة دریم روایت منقول دې. چې حاصل شوې نفع کفیل لپاره جائز نه ده.نو کفیل به دا نفع صدقه کوي.

لَهُمَا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې أَنَّهُ رَبِحَ فِي مِلْكِهِ چې کفیل پخپل ملك کې په هغه طریقه نفع حاصل کړې ده عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي بَيَّنَّاهُ کومه طریقه چې موږ بیان کړې ده فَيُسَلَّمُ لَهُ نودا نفع به د کفیل لپاره سلامت پاتې وي.

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله دلیل اود امام ابوحنیفه رحمه الله د دوهم روایت وجه دا بیانوي چې کفیل دا نفع په خپل ملك کې حاصله کړې ده.نو ددې نفع ده لپاره جائزه او صحیح ده.ددې بیان وړاندې په دې قول سره شوې دې «لأنه وجب له علی المکفول عنه مثل ما وجب للطالب علیه»

وَلَهُ اود امام صاحب ﷺ دليل دادي أَنَّهُ تَمَكَّنَ الْخُبْثُ مَعَ الْمِلْكِ چې د ملك باوجود (په نفع کې) خبث پيدا شوي دي إِمَّا لِأَنَّهُ بِسَبِيلٍ مِنَ الاِسْتِرْدَادِ يا د استرداد په طريقه بِأَنْ يَقْضِيَهُ بِنَفْسِهِ، چې پخپله ئې ادا كړي أَوْ لِأَنَّهُ رَضِيَ بِهِ عَلَى اعْتِبَارِ نو يا خو به دې وجه چې مكفول عنه د كفيل په مالك كيدلو باندې په دې وجه راضي شوي وو قَضَاءِ الْكَفِيلِ چې كفيل به د مكفول له دين اداكوي فَإِذَا قَضَاهُ بِنَفْسِهِ نو كله چې مكفول عنه پخپله ادا كړو لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِهِ نو هغه په دې باندې راضي نشو.

تشريح:- په دې عبارت كې اود مبسوط د كتاب الكفالة دريم روايت منقول دې. چې حاصل شوي نفع كفيل لپاره جائز نه ده.نو كفيل به دا نفع صدقه كوي.

اود كتاب الكفالة روايت دليل دادې چه د كفيل د ملك باوجود په نفع كې د دوې (دوه) وجهو په يوه وجه سره خبث پيدا شوي دې.يا خو خكه چې مكفول عنه ته د خپل هغه يوګړ غنمو واپس اخستلو اختيار حاصل دې.كوم چې ده كفيل ته د پور ادا كاوه لپاره وركړي وو.په دې طريقه چې مكفول عنه پخپله د مكفول له قرضه ادا كړي.نو هركله چې مكفول عنه پخپله د مكفول له قرضه اداكړله.نو د مكفول عنه څخه به خپل وركړې شوي يوګړ غنم واپس اخلي.اوكه د مكفول له قرضه كفيل اداكړله.نو بيا به مكفول عنه ته د واپس اخستلو حق حاصل نه وي.حاصل دا شو چه په يوګړ غنمو كې د كفيل ملك متردد دې.دا هم كيداې شي.چه دده ملك پاته شي.اودا هم ممكن ده.چه دده ملك پاته نشي.او داسې ملك ملك قاصر وي.ګويا كفيل د ملك قاصر نه نفع حاصل كړې ده.نوكه كفيل د غير د ملك نه نفع حاصل كړې وه.نودا نفع به خبيث وه.خوكله چې ئې دملك قاصر نه نفع حاصل كړې ده.نو په دې كې به د خبث شبه ضرور وي.او په ذكرشوې نفع كې يا په دې وجه خبث دې.چه مكفول عنه په يوګړ غنمو كې د كفيل په ملك ثابتولو باندې په دې وجه راضي شوي وو.چه كفيل به مكفول له ته اداكوي.خوكله چې مكفول عنه پخپله ادا كړو.نودې دكفيل مالك كيدلو باندې راضي نشو.اوهركله چې مكفول عنه د كفيل په ملكيت باندې راضي نشو.نو ګويا كفيل د غيرملك نه نفع حاصل كړله.اود غير ملك نه چې كومه نفع حاصل كړې شي. هغه خبث وي.په دې وجه د كفيل حاصل كړې شوې دا نفع به هم خبيث وي.

وَهٰذَا الْخُبْثُ يَعْمَلُ فِيمَا يَتَعَيَّنُ اودا خبث په داسې مال كې موثر وي.كوم چې په متعين كاوه سره متعين كيږي فَيَكُونُ سَبِيلُهُ التَّصَدُّقَ فِي رِوَايَةٍ نو ددې لاره په يو روايت مطابق صدقه كول دي.

تشريح:- دا خبره ثابته شوه.چه ديوګړ غنمو نه چې كفيل كومه نفع حاصل كړې ده.په دې كې خبث موجود دې.او كوم خبث چې په هغه څيزونوكې وي.كوم چې په متعين كاوه سره متعين كيږي.په دې كې د ملكيت باوجود خبث اثر كوي.او غنم هم ددې څيزونوځنې دي.كوم چې په متعين كاوه سره متعين كيږي.نود غنمو نه چې كومه نفع حاصل كړې شي.هغه به هم خبيث وي.او مال خبيث چونكه صدقه كول واجب دي.نو ددې نفع صدقه كول به هم واجب وي.

وَيَرُدُّهُ عَلَيْهِ فِي رِوَايَةٍ (١) اود يو روايت مطابق به كفيل مكفول عنه ته واپس كوي لِأَنَّ الْخُبْثَ لِحَقِّهِ، خكه چې خبث د مكفول عنه د حق په وجه پيدا شوي دي وَهٰذَا أَصَحُّ اوهم دا اصح دي لٰكِنَّهُ اسْتِحْبَابٌ لَا جَبْرٌ خو دا حكم مستحب دي.زبردستي نه ده لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ خكه چې حق خود كفيل لپاره ثابت دي.

حل اللغة: ① الاستحباب-مستحب-② الجبر-زبردستي-③ لحق-ملحق شو-④ يرد-واپس كوي

تشريح:- د جامع صغير د روايت دليل دادې چه په ذكرشوې نفع كې چې كوم خبث پيدا شوي دې.هغه د مكفول عنه د حق په وجه پيدا شوي دې.د حق شرع په وجه نه دې پيدا شوې.نو هركله چې د مكفول عنه د حق په وجه خبث پيدا

(١) القول الراجح هو أن الرد على الأصل مندوب كذا في ردالمحتار(١٤/٣١٠) وفتح القدير(٦/٣٢٢) نقلاً عن القول الراجح (٢/٩٧)-



شو.نودا دې مكفول عنه ارخ ته واپس كړي.خكه چې مكفول عنه ته واپس كاوه سره حق ددې مستحق ته رسيږي.علامه مرغيناني ﷺ فرمائي.چه دا روايت د صدقه كاوه په نسبت زيات صحيح دې.خو ذكرشوې نفع مكفول عنه ته وركول مستحب دي.كفيل به د حاكم د ارخه نشي مجبوره كولې.خكه چې د يوګړ غنمو بهرحال مالك كفيل دې.

## د بيع عينه په صورت كښې كفيل باندې د تاوان حكم

قَالَ (مصنف ﷺ) فرمايي وَمَنْ كَفَلَ عَنْ رَجُلٍ بِأَلْفٍ عَلَيْهِ بِأَمْرِهِ اوكه يوكس د بل د ارخه د يو زر درهمو كوم چې په ده باندې دي دده په حكم سره كفالت اوكړو فَأَمَرَهُ الْأَصِيلُ بيا مكفول عنه كفيل ته حكم اوكړو أَنْ يَتَعَيَّنَ عَلَيْهِ حَرِيرًا چې هغه په دې باندې د ريښمو بيع عينه اوكړي فَفَعَلَ نوكفيل داسې اوكړل فَالشِّرَاءُ لِلْكَفِيلِ نو اخستل به د كفيل لپاره وي وَالرِّبْحُ الَّذِي رَبِحَهُ الْبَائِعُ اوكومه نفع چې بائع حاصل كړې ده فَهُوَ عَلَيْهِ هغه به هم كفيل باندې وي وَمَعْنَاهُ الْأَمْرُ بِبَيْعِ الْعِينَةِ ددې معنى د بيع عينه په طور باندې د امر ده.

حل اللغة: ① يتعين-متعين كيږي-② الربح-ګټه-③ حرير-ريښم-④ الامر-حكم

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړې دداسې كس د ارخه دده په حكم سره كفيل شو چه په ده باندې زر درهمه پور دي.بيا مكفول عنه كفيل ته حكم اوكړو.چه په ما باندې د ريښمو د يو تهان بيع عينه اوكړه.نو كفيل بيع عينه اوكړله.نودا اخستل به د كفيل لپاره وي.اوكومه نفع چې د ريښمو بائع ته حاصل شوې ده.هغه به هم په كفيل باندې وي.په بيع عينه كې د تاوان ذمه دار به هم كفيل وي.مكفول عنه به نه وي.مثلاً د خالد په حامد باندې زر درهم پور دي.نو شاهد ، د حامد په حكم سره د زر درهمو خالد لپاره كفيل شو.بيا حامد شاهد ته د بيع عينه په طريقه د ريښمو د كپړې يو تهان اخستلو حكم وركړو.نو شاهد د بيع عينه په طريقه واخستلو.نودا اخستل به هم شاهد لپاره وي.او په دې اخستلو كې چې كوم تاوان وي.هغه به هم شاهد برداشت كوي.

مِثْلُ أَنْ يَسْتَقْرِضَ پور مِنْ تَاجِرٍ عَشَرَةً مثلاً د يو تاجر نه لس درهم پور اوغواړي فَيَأْبَى عَلَيْهِ نو تاجر ده ته د پور وركاوه نه انكار اوكړي وَيَبِيعَ مِنْهُ ثَوْبًا يُسَاوِي عَشَرَةً بِخَمْسَةَ عَشَرَ مَثَلًا رَغْبَةً فِي نَيْلِ الزِّيَادَةِ اود پور غوښتونكي په لاس مثلاً د لس درهمو د ماليت كپړه د زياتوالى حاصلولو په غرض سره د پنځلس درهمو په عوض وپلوري لِيَبِيعَهُ الْمُسْتَقْرِضُ بِعَشَرَةٍ چې پور غوښتونكې دا (كپړه) د لس درهمو په عوض وپلوري وَيَتَحَمَّلَ عَلَيْهِ خَمْسَةً او پور غوښتونكې خپل ځان باندې پنځه درهمه برداشت كړي.

حل اللغة: ① يستقرض- پور اخلي-② يساوي-برابريږي-③ ثوب-جامه-④ النيل-حاصليدل

تشريح:- د علامه مرغيناني ﷺ د بيان مطابق د بيع عينه صورت دادې چه كفيل د يوتاجر نه مثلاً لس درهمه پور اوغواړي.او تاجر د پور وركاوه نه انكار اوكړي.خو تاجر د پور غوښتونكي په لاس د لس درهمو د ماليت يوه كپړه د پنځلس درهمو په عوض پور وپلوري.چه تاجر ته پنځه درهمه نفع زياتي حاصل شي.بيا كفيل (پور غوښتونكي) دا كپړه د بائع نه علاوه د بل چا په لاس دلس درهم نغد په عوض خرڅ كړي.اود مكفول عنه قرضه اداكړي.نو په دې بيع كې چې د پنځه درهمو كومه خساره واقع شوه.دا به كفيل برداشت كوي.مكفول عنه به ئې نه برداشت كوي.

ثُمَّ بِهِ ددې بيع نوم عينه خكه ايخودې شوي دي لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِعْرَاضِ عَنِ الدَّيْنِ إِلَى الْعَيْنِ چې په دې كې د دين نه عين ارخ ته اعراض (ګرځيدل) دى وَهُوَ مَكْرُوهٌ او عينه مكروه ده لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِعْرَاضِ عَنْ مَبَرَّةِ الْإِقْرَاضِ مُطَاوَعَةً لِمَذْمُومِ الْبُخْلِ خكه چې په دې كې د بخل مذموم پيروى كاوه سره د پور وركاوه د نيكۍ نه اعراض كول لازميږي.

حل اللغة: ① الاعراض-ډډه كول-② الدين-قرض-③ المطاوعة-تابعداري-④ البخل-كنجوسي

تشريح:- علامه مرغيناني ﷺ فرمائي.چه بيع عينه مكروه ده.د بعض په نيز مكروه تحريمى اود بعض په نيز مكروه تنزيهي ده.او مكروه خكه ده.چه په دې كې د بخل مذموم پيروى (تابعداري) كول دي.اود پور وركاوه د نيكۍ نه

اعراض کول لازمیږي.یعني پور ورکول یوه نیکي وه.دا پریږدي.اود بخل مظاهره کوي.دا خیال سائل پکار دی.چه کراهت په مجموعه سره پیدا شوي دي.ځکه چې د پور ور کاوه نه اعراض کول هم مکروه نه دی.او کوم بخل چې په تجارتونوکي په نفع طلب کاوه سره حاصل شوي دي.هغه هم مکروه نه دي.ګنی بیع مرابحه به مکروه وه.البته د دواړو مجموعه نه کراهت پیدا شو.په دي وجه امام محمد ﷫ فرمائي.چه زما په زړه کي د بیع عینه دا ارخه د غرونو برابر خطره ده.اودا طریقه د سود خورو ایجاد دي.حالانکه نبی کریم ﷺ ددي مذمت فرمائیلي دي.لکه چې ارشاد دي. ﴿إذا تبايعتم بالعينة واتبعتم اذناب البقر ذللتم وظهر عليكم عدوكم وفي رواية سلط الله عليكم شراركم فيدعوا خياركم فلا يستجاب لكم وقيل اياك والعينة فإنها لعينة﴾ یعني،، هرکله چې تاسو خلګ بیع عینه کوئ.اود غویانو په لکو پسي ځئ:(جهاد پریږدئ او په زراعت وغیره کي مشغولیږئ) نو ذلیل به شئ.او ستاسو دښمن به په تاسو باندي غالب شي.او په یو روایت کي دی.چه دغه وخت به الله ﷻ ستاسو بدکار په تاسو باندي مسلط کړي.نو ستاسو نیکان خلګ به دعا کوي.خو ددوی دعا به نه قبلیږي.او ویلی شوی دی.چه د بیع عینه بچ اوسئ.ځکه چې دا آفت د بیع عینه په وجه دي.

**ثم قيل: هٰذَا الضَّمَانُ** بیا ویلی شوی دی.چه دا د مکفول عنه د ارخه د تاوان ضمانت دي **لِمَا يَخْسَرُ الْمُشْتَرِي** کوم به چې مشتري په بیع عینه کي برداشت کوی **نَظَرًا إِلَى قَوْلِهِ عَلَيَّ** دده دقول ،، علي،، ارخ ته نظر کاوه سره **وَهُوَ فَاسِدٌ** حالانکه دا ضمان فاسد دي **وَلَيْسَ بِتَوْكِيلٍ** اودا توکیل نه دي.

**تشريح:**- علامه مرغیناني ﷫ په اصل مسئله باندي استدلال کولوکي فرمائي.چه د بعض حضراتو رائې داده.چه د مکفول عنه قول ،،علي،،(ما باندي بیع عینه اوکړه) ارخ ته چې نظر اوکړي شی.نودا د خسارې ضمان دي. یعني مکفول عنه کفیل ته اوونیل.ته بیع عینه اوکړه.او په دي کي چې کومه خساره وی.د هغې ضامن زه یم. حالانکه دا ضمان فاسد دي.ځکه چې ضمان د هغه څیزونو صحیح کیږي.کوم چې مضمون وی.او خساره په چا مضمون نه وی.مثلاً یو کس اوونیل.ته په دي بازارکي اخستل خرڅول کوه.په دي شرط چې په دي کي تاته څه تاوان اورسیږي.د هغې ضامن زه یم.نودا ضمان باطل دي.نو هرکله چې د تاوان ضمان باطل دي.نود مکفول عنه په بیع عینه کي د خسران ضامن کیدل به هم باطل وی.صاحب د کتاب ﷫ فرمائي.چه دا د مکفول عنه د ارخه توکیل نه دي.ځکه چې د توکیل لپاره کلمه ،،لي،، راځي.کلمه،، علي،،نه راځي.او مکفول عنه،، علي،، ویلی دی،،لي،، ئې نه دی ویلي.یعني دا ئې ویلي دی.چه ماباندي عینه اوکړه.داسې ئې نه دی ویلي.چه زما لپاره عینه اوکړه.

**وقيل:** او ویلی شوی دی **وَتَوْكِيلٌ فَاسِدٌ** چې دا توکیل فاسد دي **لِأَنَّ الْحَرِيرَ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ** ځکه چې حریر( ریښم) متعین نه دي **وَكَذَا الثَّمَنُ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ** اوهم دغه ډول ثمن هم غیرمعلوم دی **لِجَهَالَةِ مَا زَادَ عَلَى الدَّيْنِ** ځکه چې کوم څه په دین باندي زیاتی دی.هغه مجهول دی **وَكَيْفَمَا كَانَ فَالشِّرَاءُ لِلْمُشْتَرِي** بهرحال اخستل به د مشتري لپاره وی **وَهُوَ الْكَفِيلُ** او هغه کفیل دي **وَالرِّبْحُ أَيِ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِ** او نفع یعني زیاتوالي به هم په کفیل باندي وی **لِأَنَّهُ الْعَاقِدُ** ځکه چې هم هغه عقد کونکي دي.

**تشريح:**- او بعضو ویلی دی.چه دا کلام د مکفول عنه د ارخه توکیل دي.ځکه چې د ﴿أن يعين على حريرا﴾ مطلب دي.چه ته زما لپاره ریښمو کپړه واخله.بیا دا خرڅه کړه.او زما قرضه اداکړه.خو دا توکیل فاسد دي.ځکه چې حریر( د ریښمو کپړه ) غیرمعلوم المقدار ده.اود ثمن هغه مقدار کوم چې د پور نه زیات دي.هغه هم مجهول دي. او هرکله چې زیاتی مقدار مجهول دي.نو ګویا ثمن مجهول دي.نو هرکله چې ثمن او حریر دواړه مجهول دی.نودا توکیل هم د فاسد کیدلو په وجه اخستل د مشتري یعني کفیل لپاره وی.او په دي کي چې کوم تاوان وی.د هغې ذمه دار به هم پخپله کفیل وی.ځکه چې کفیل هم عقدکونکي دي.اوکوم کس چې عقد کوی.هم هغه د تاوان ذمه دار وی.په دي وجه به د تاوان ذمه دار کفیل وی.



## د ماضي په صيغي سره د كفالت حكم

**قال** فرمائي **وَمَنْ كَفَلَ عَنْ رَجُلٍ بِمَا ذَابَ لَهُ عَلَيْهِ** اوکه یو کس د یو سړي د ارخه د هغه شئ کفیل شو.کوم چې دچا په ده باندي وو **أَوْ بِمَا قَضَى لَهُ عَلَيْهِ** یا د داسې حق کفیل شو.د کوم چې دچا لپاره په ده باندي فیصله کړي شوې وه **فَغَابَ الْمَكْفُولُ عَنْهُ** بیا مکفول عنه غائب شو **فَأَقَامَ الْمُدَّعِي الْبَيِّنَةَ عَلَى الْكَفِيلِ** بیا مدعی ( مکفول له) په کفیل باندي بینه پیش کړل **بِأَنَّ لَهُ عَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ أَلْفَ دِرْهَمٍ** چې د مدعی په مکفول عنه باندي یو زر درهم دی **لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَتُهُ** نود مدعی بینه به قبول نه وی.

**حل اللغة:** ① ذاب-واجب وو-② غاب-غائب شو-③ البينة-ګواهان-④ اقام- قائم کړل

**تشريح:**- صورت د مسئلي دادي.چه یوسړي د بل کس د ارخه په دي الفاظو سره کفیل شو.چه په ده باندي د فلانی څه هم ثابت وی.یعني په حساب کتاب کي چې څه هم په ده راشي.د هغې کفیل زه یم.یائې دا اوونیل.چې زه د هغه حق کفیل یم.چه د کوم فلانی لپاره د هغې فیصله شوي وی.بیا مکفول عنه غائب شو.او مدعی یعني مکفول له په کفیل باندي ګواه پیش کړل.چه زما په مکفول عنه باندي زر درهم دی. نود مکفول له ګواه به نه قبلیږي.مثلاً خالد اوونیل.چه زه د حامد د ارخه د هغه مال کفیل یم.کوم مال چې د شاهد په حامد باندي ثابت شي.یا خالد اوونیل.چه زه د حامد دارخه د هغه حق کفیل یم.چه د کوم لپاره شاهد باندي حکم اوکړي شي.بیا مکفول عنه یعني حامد غائب شو.او مکفول له یعني شاهد په کفیل یعني خالد باندي بینه پیش کړل.چه زما مکفول عنه یعني حامد باندي زر درهم دی.نود مکفول له یعني د شاهد بینه به نه قبلیږي.

**لِأَنَّ الْمَكْفُولَ بِهِ مَالٌ مَقْضِيٌّ بِهِ** ځکه چې مکفول به داسې مال دي.دکوم چې فیصله ورکړي شوی وی **وَهٰذَا فِي لَفْظَةِ الْقَضَاءِ ظَاهِرٌ** اودا لفظ خو په قضاء ښکاره دي **وَكَذَا فِي الْأُخْرَى** اوهم دغه ډول په دوهم صورت کي **لِأَنَّ مَعْنَى ذَابَ تَقَرَّرَ** ځکه چې د ،،ذاب،، معنی د تقرر ده **وَهُوَ بِالْقَضَاءِ** او تقرر د قضاء په ذریعه کیږي **أَوْ مَالٌ يُقْضَى بِهِ** یا داسې مال چې ددي حکم اوکړي شی **وَهٰذَا مَاضٍ أُرِيدَ بِهِ الْمُسْتَأْنَفُ** اودا لفظ ماضی دي.چه ددي نه مستقبل مراد دي **كَقَوْلِهِ: أَطَالَ اللّٰهُ بَقَاءَكَ** لکه ﴿أطال الله بقاءك﴾ **فَالدَّعْوَى مُطْلَقٌ عَنْ ذٰلِكَ** حالانکه دعوه ددي نه مطلق ده **فَلَا تَصِحُّ** ځکه به دعوه صحیح نه وی.

**حل اللغة:** ① المستانف-مستقبل-② اطال-اوده کړی-③ تقدم -وړاندي تیرشوي-④ اريد-اراده کړي شوي

**تشريح:**- دلیل دادي.چه د بینه قبلول د دعوي په صحت باندي موقوف دی.یعني که دعوه صحیح وی.نود مدعی بینه به قبول وی.ګنی قبول به نه وی.اودلته کي د مکفول له دعوه نشته.ځکه چې د دعوه او مکفول به په منځ کي مطابقت موجود نه دي.حالانکه دلته کي د دعوي د صحت لپاره د عوی اومکفول به په منځ کي مطابقت کیدل ضروری دی.اوپه مکفول به او دعوه کي مطابقت ځکه موجود نه دي.چه مال مکفول به یا خو هغه مال دي.د کوم چې د کفاله نه وړاندي په مکفول عنه باندي حکم ورکړي شوی دي.ځکه چې کفیل د ﴿ما قضى﴾ صیغه ذکر کړي ده.چه ددي مطلب دادي.چه د کفاله نه وړاندي د کوم مال په مکفول عنه باندي قاضی حکم کړي دي.کفیل د هغې کفالت کړي دي.اود ﴿ما ذاب له عليه﴾ وئیلو په صورت کي هم مکفول به هغه مال دي.د کوم چې کفالة نه وړاندي مکفول عنه باندي حکم ورکړي شوي دي.ځکه چې د ،،ذاب،، معنی تقرر او وَجَب ده.اود مال تقرر( ثابتیدل) په قضاء د قاضی سره کیږي.نو ثابته شوه.چه کفیل د هغه مال کفالت کړي دي.کوم چې د قاضی په قضاء سره واجب شوي دي.یا مال مکفول به هغه مال دي.د کوم د کفاله نه روسته چې په مکفول عنه باندي حکم کولي شی.ځکه چې لفظ د،، ذاب ،، او ،،قضی،،اګرچه د ماضی صیغي دی.خو مراد مستقبل دي.لکه په ﴿أطال الله بقاءك﴾ کي لفظ د ،،اطال،، ماضی دي.خود استقبال معنی مراد ده.بهرحال مکفول به هغه مال دي.دکوم چې په مکفول عنه باندي د کفاله نه وړاندي حکم ورکړي شوي دي.یا هغه مال دي.د کوم چې د کفاله نه روسته حکم ورکړي شوي دي.په دواړه صورتونوکي مکفول به مال مقید دي.اود مکفول له مکفول عنه باندي د زر درهمو دعوه مطلق

ده.یعنی مکفول لـه مطلقا د زر درهمو دعوه کړې ده.په دعوه کې نه ددې نـه تعریض شوې دې.چه د کفالـه نه وړاندې مکفول عنه باندې ددې حکم شوې وو.او نه ددې خبرې تعرض شته.چه د کفالـه نه روسته به حکم کولې شی.نو ثابته شوه.چه مال مکفول به اود دعوې په منځ کې مطابقت نشته.اوهرکله چې د دعوې او د مال مکفول به په منځ کې مطابقت نشته.نو دعوه به صحیح نه وی.اوهرکله چې دعوه صحیح نشوه.نو بینه به هم قبول نه وی.

## د مال موجل کفیل بامره جوړیدلو حکم

وَمَنْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ اوکه یوکس بینه قائم کړل أَنَّ لَهُ عَلَى فُلَانٍ كَذَا چې زما په فلانی باندې دومره قدرې مال دې وَأَنَّ هَذَا كَفِيلٌ عَنْهُ بِأَمْرِهِ اودا سړې دده دارخه دده په حکم سره کفیـل دې فَإِنَّهُ يُقْضَى بِهِ عَلَى الْكَفِيلِ وَعَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ نو ددې مال حکم به په کفیل اومکفول عنه باندې ورکولې شی.

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړې مثلاً حامد د خالد د اړخه دده په حکم سره د مال موجل کفیل شو.بیا مکفول عنه یعنی خالد غائب شو.بیا مکفول له یعنی شاهد د قاضی په عدالت کې دعوه اوکړله .او بینه ئې پیش کړل.چه زما په فلانی غائب یعنی خالد باندې دومره قدرې مال دې.اودې یعنی حامد دده د اړخه دده په حکم سره کفیـل دې.نود ذکرشوی مـال پـه سلسله کې د قاضی دا فیصلـه بـه پـه کفیـل او مکفول عنـه دواړو باندې نافذ وی.یعنی په کفیل حاضرباندې چې کوم حکم کولې شی.هم ددې په نتیجه کې به مکفول عنه غائب باندې هم حکم کولې شی.

وَإِنْ كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او که کفاله دده حکم نه بغیر وی يُقْضَى عَلَى الْكَفِيلِ خَاصَّةً نو خاص طور باندې به په کفیل باندې حکم ورکولې شی. وَإِنَّمَا تُقْبَلُ لِأَنَّ او بینه به ځکه قبلولې شی الْمَكْفُولَ بِهِ مَالٌ مُطْلَقٌ چې مکفول به مال مطلق دې بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د تیرشوی.

**تشریح:**- اوکه کفاله د مکفول عنه په حکم سره نه وی. نـود مکفول لـه د بینه پـه وجـه بـه دمـال حکم صرف پـه کفیل باندې کولې شی.په مکفول عنه غائب باندې به د قاضی دا حکم نه نافذ کیږی.

حاصل داچه په دې مسئله کې که کفیل بامره وی.اوکه کفاله بغیرامره وی.په دواړو صورتونوکې بـه د مکفول لـه بینه قبلولې شی.دلیـل دادې.چه پـه دې مسئله کې مکفول بـه مـال مطلق دې.ځکـه چې کفیـل دا مـال نـه پـه «ماتقضى» ،،دکوم حکم چې ورکړې شو،، سره مقید کړې دې.اونه ئې «يقضى به» ،،دکوم فیصله چې بـه کولې شی،، سره مقید کړې دې.اوهرکله چې په یوقید سره مقید نه دې.نو مکفول به مال مطلق شو.اود مکفول لـه دعوه هم مطلق ده.ځکه چې مکفول له دا دعوه کړې ده.چه زما په مکفول عنه باندې دومره قدرې مال دې.اودا مال ئې په هیڅ قید سره نه دې مقید کړې.نوهرکله چې دعوه او مدعی بـه( مال مکفول بـه) دواړه مطلق دی.نود مطابقت موجود کیدلو په وجه به دعوه صحیح وی.اوهرکله چې دعوه صحیح ده.نو بینه به هم قبلولې شی.ځکه چې کوم بینه په دعوه صحیح باندې مبنی وی.هغه شرعاً قبلولې شی.نو په دې مسئله کې هم د مکفول لـه پیش شوی بینه قبلولې شی.ددې په خلاف تیره شوې مسئله کې ،چه په هغې کې د دعوې اومدعی بـه ( مکفول بـه) پـه منځ کې مطابقت نه کیدلو په وجه بینه نه قبلیږی.

وَإِنَّمَا يَخْتَلِفُ بِالْأَمْرِ وَعَدَمِهِ اوبه حکم کیدلو اونه کیدلو سره اختلاف په دې وجه دې لِأَنَّهُمَا يَتَغَايَرَانِ چې دا دواړه خپل منځ کې متغایر دی لِأَنَّ الْكَفَالَةَ بِأَمْرٍ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً ځکه چې کفاله بامر ابتداء تبرع ده وَمُعَاوَضَةٌ انْتِهَاءً او انتهاء معاوضه ده وَبِغَيْرِ أَمْرٍ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً او بغیر امر نه ابتداء او انتهاء تبرع ده فَبِدَعْوَاهُ أَحَدَهُمَا لَا يُقْضَى لَهُ بِالْآخَرِ نو په دې دواړوکې د یو دعوه کاوه په وجه به ددې لپاره بل دول فیصله نشی ورکولې وَإِذَا قُضِيَ بِهَا بِالْأَمْرِ اوهرکله چې د کفاله بالامر حکم ورکړې شو ثَبَتَ أَمْرُهُ نود مکفول عنه حکم ورکول ثابت شو وَهُوَ يَتَضَمَّنُ الْإِقْرَارَ بِالْمَالِ اودا د مال اقرار ته هم متضمن لِتَصْيِيرِهِ مَقْضِيًّا عَلَيْهِ، نودا اقرار به هم په مکفول عنه باندې ورکړې شوې حکم شی. وَالْكَفَالَةُ بِغَيْرِ أَمْرِهِ لَا تَمَسُّ جَانِبَهُ او



کفاله بغیر امره مکفول عنه اړخ ته نه لګی لِأَنَّهُ تَعْتَمِدُ صِحَّتُهَا قِيَامَ الدَّيْنِ فِي زَعْمِ الْكَفِيلِ ځکه چې د کفاله صحت،د کفیل په ګمان کې د دین په قیام باندې موقوف دې فَلَا يَتَعَدَّى إِلَيْهِ نو دین به مکفول عنه اړخ ته نه متعدی کیږی.

**حل اللغة:** ① **متغايران**-دیوبل نه مختلف دی-② **الابتداء**-اول-③ **الانتهاء**-اخر-④ **يتضمن**-شاملیږی

**تشریح:**- پـه دې عبارت سره علامـه مرغینانی ؒ د کفاله بالامر او بغیرالامر په منځ کې د اختلاف حکم وجه بیانوی.فرمائی.چه د کفالـه بـالامر پـه صـورت کې دقاضـی حکم پـه کفیـل او مکفول عنـه دواړو بـانـدې نافـذ کیږی.اګرچه قضاء علی الغائب ناجائز ده.اود کفاله بغیرالامر په صورت کې به صرف په کفیل باندې نافذ وی.او مکفول عنه کوم چې غائب دې.په ده به نه نافذ کیږی .وجه داده.چه کفاله بالامر او کفاله بغیرالامر دواړه خپل منځ کې متغایر دی.په دې طریقه چې کفاله بالامر ابتداء تبرع ده.او انتهاء معاوضه ده.او کفاله بغیرالامر ابتداء هم تبرع ده.او انتهاء هم تبرع ده.نو هرکله چې کفاله بالامر اود کفاله بغیرالامر په منځ کې تغایر ثابت شو.نود مکفول له په دې دواړو کې د یو دعوه کاوه سره به دده لپاره د دوهم فیصله نشی کولې.ځکه چې حاکم د هغه سبب په وجه فیصله کوی ؒ په کوم سبب سره چې مدعی دعوه کوی.که مدعی د ملك دعوه په اخستلو سره اوکړله.یعنی دا ئې اووئیل.چه زه ددې شی مالك ځکه یم.چه ما دا اخستې دې.نود حاکم لپاره به دا جائز نه وی.چه دې د هبې په ذریعه د مالك کیدلو فیصله اوکړی.اګرچه د اخستلو او هبه د دواړو حکم یو دې.یعنی د دواړو حکم ملك دې.یعنی هرکله چې مدعی یعنی مکفول له د کفاله بالامر دعوه اوکړله.او قاضی بینه سره د کفاله بالامر فیصله اوکړله.نودا ثابته شوه.چه مکفول عنه کفیل ته د کفالت کاوه حکم کړې دې.اودکفاله حکم ورکول دې خبرې ته متضمن دې.چه مکفول عنه مکفول له لپاره د مال اقرارکړې دې.ځکه چې مکفول عنه کفیل ته د مال حکم هغه وخت کوی.کله چې دې د مکفول له لپاره د مال اقرار اوکړی.اوهرکله چې د مکفول عنه د مال اقرار ثابت شو.نودا اقرار به هم د قاضی د فیصلې لاندې داخل وی.ګویا قاضی حکم ورکړو.چه مکفول عنه ددې مدعی یعنی مکفول له لپاره د مال اقرار کړې دې.اوس ددې فیصلې نه روسته که مکفول عنه غائب حاضر شو.نو دده خلاف دوباره د بینه پیش کاوه اړتیا نشته.اوکه مکفول له د کفاله بغیرامره دعوه اوکړله.یعنی دائې اووئیل.چه په فلانی باندې زما دومره قدرې مال دې.اودا سړې دده د حکم نه بغیر دده کفیل دې.نودا کفاله د مکفول عنه ( غائب) ته نه شاملیږی.یعنی په دې صورت کې دمال په سلسله کې د قاضی فیصله صرف په کفیل باندې نافذ کیږی.او په مکفول عنه باندې نه نافذ کیږی.اوپه کفیل باندې مال لازمیدلو سره په مکفول عنه باندې مال واجبیدل نه لازمیږی.که یوکس اووئیل.چه د فلانی په فلانی باندې زر درهم دی.اوزه ددې کفیل یم.نو په کفیل به مال واجب وی.اګرچه په مکفول عنه باندې نه واجبیږی.دلیل دادې.چه د کفاله بغیرامره صحت په دې باندې موقوف دې.چه د کفیل په ګمان کې دین موجود وی.یعنی صرف د کفیل ګمان وی.چه په مکفول عنه باندې د مکفول له دین دې.اود یوسړی ګمان چونکه په دوهم باندې نه لازمیږی.په دې وجه دا دین دکفیل نه مکفول عنه اړخ ته نه متعدی کیږی.او انسان چونکه پخپل ګمان کې ماخوذ وی.په دې وجه به دا مال د کفیل نه اخستلې شی.

وَفِي الْكَفَالَةِ بِأَمْرِهِ يَرْجِعُ الْكَفِيلُ بِمَا أَدَّى عَلَى الْآمِرِ اوپه کفاله بامره کې به کفیل ادا کړې شوې مال دمکفول عنه نه واپس اخلی. وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ او امام زفر ؒ فرمایي لَا يَرْجِعُ چې واپس به نه اخلی لِأَنَّهُ لَمَّا أَنْكَرَ ځکه چې کله کفیل د کفالې نه انکار اوکړو فَقَدْ ظَلَمَ فِي زَعْمِهِ نو دې پخپل ګمان کې مظلوم شو فَلَا يَظْلِمُ غَيْرَهُ نودې به په علاوه ( بل چا) باندې ظلم نه کوی وَنَحْنُ نَقُولُ صَارَ مُكَذَّبًا شَرْعًا او موږ وایو.چه د ذکرشوی کفیل شرعاً تکذیب کړې شوې دې فَبَطَلَ مَا زَعَمَهُ نوکوم څه چې د کفیل په ګمان کې وو.هغه باطل شو.

**حل اللغة:** ① **الزعم**-ګمان-② **مكذب**-روغږن ګرځولې شوې دې-③ **يرجع**-رجوع به کوی-④ **الامر**-حکم کونکې

**تشریح:**- په دې عبارت سره علامه مرغینانی ؒ فرمائی.که کفاله د مکفول عنه په حکم سره وی.نو کفیل چې د مکفول عنه د اړخه څه هم اداکوی.د هغې مکفول عنه اړخ ته رجوع کولې شی.او حضرت امام زفر ؒ فرمائی.چه په ذکرشوې مسئله کې د کفاله بامره باوجود کفیل ته مکفول عنه اړخ ته د رجوع کاوه هیڅ حق نشته.

د امام زفر رحمه الله دليل دادي.چه په ذکرشوي مسئله کي مکفول له د بينه په ذريعه کفالت ثابت کړي دي.او په بينه سره د ثابتولو ارتيا هغه وخت راپيښيږي.کله چي مدعی عليه منکر وی.نو معلومه شوه.چه کفيل د کفاله منکر دي.اوهر کله چي کفيل د کفاله منکر دي.اومکفول له د بينه په ذريعه کفاله ثابت کړې ده.نوګويا د کفيل د خيال مطابق مکفول له په کفيل باندي ظلم کړي دي.او مظلوم ته په بل چا باندي د ظلم حق نه وی.نو کفيل ته به دا حق نه وی.چه دي د مکفول عنه ارخ ته د مالادی مقدار رجوع اوکړي.او په ده باندي ظلم اوکړي.خو زموږ د ارخه ددي خواب دادي.چه کله قاضي د کفيل خلاف فيصله ورکړله.او کفاله ئي ثابت کړله.نوکفيل پخپل دي قول کي چه،،زه کفيل نه يم،، شرعاً مکذب شوي دي.يعنی شرعاً د کفيل تکذيب شوي دي.اوهرکله چي شرعاً د کفيل تکذيب اوکړي شو.نوځه چي د کفيل په ګمان کي وو.يعنی دده مظلوم کيدل،هغه هم باطل شو.اوهرکله چي د کفيل ګمان باطل شو.نودا ثابته شوه.چه په مکفول عنه باندي مال وو.او کفيل دده په حکم سره کفالت قبول کړي دي.اوهرکله چي کفيل د مکفول عنه په حکم سره کفالت قبول کړي دي.نود دين ادا کاوه نه روسته به کفيل ته مکفول عنه ارخ ته رجوع کول هم معتبر وی.

## د کفيل بالدرك جوړيدلو حکم

قَالَ فرمايي وَمَنْ بَاعَ دَارًا او يوکس کور خرڅ کړو وَكَفَلَ رَجُلٌ عَنْهُ بِالدَّرَكِ او يوسړي د بائع د ارخه کفيل بالدرك شو فَهُوَ تَسْلِيمٌ نودا تسليم (منل) دي لِأَنَّ الْكَفَالَةَ لَوْ كَانَتْ مَشْرُوطَةً فِي الْبَيْعِ خکه که کفاله په بيع کي مشروط وی فَتَمَامُهُ بِقَبُولِهِ نود بيع پوره کيدل د کفيل په قبلولو باندي دی ثُمَّ بِالدَّعْوَى يَسْعَى فِي نَقْضِ بيا په دعوه سره دهغه شئ د ماتولو کوښښ کوی مَا تَمَّ مِنْ جِهَتِهِ کوم چي دده د ارخه تمام شوي دي.

حل اللغة: ① الدار-کور-التسليم-سپارل-يسعى- کوښښ کوی-تم-پوره شوه

تشريح:- صورت د مسئلې دادي.که يوکس يوکور خرڅ کړو.اويو سړي د بائع د ارخه مشتری لپاره کفيل بالدرك شو.يعنی کفيل مشتری ته اووئيل.که دا کور مستحق شو.نود ثمن واپس کاوه ضامن زه يم.نود کفيل دا وئيل.دا خبره منل دی.چه دا کور د بائع ملك دي.ددي نه روسته که کفيل په مشتری باندي دا دعوه اوکړله.چه ددي کور مالك زه يم.نود کفيل ددي دعوي سماعت به نه کيږی.او دده ارخ ته به توجه نشی کولي.خکه چي کفاله به په بيع کي يا مشروط وی.او يا به مشروط نه وی.يعنی يا به بائع په دي شرط سره خرڅ کړي وی.چه فلانی سړي مشتری لپاره کفيل بالدرك دي.اويا به ئي د شرط نه بغير خرڅ کړي وی.خو روسته به بل چا کفالت قبول کړي وی.نوکه کفاله په بيع کي مشروط وه.نود بيع تماميدل به د کفيل په قبلولو باندي موقوف وی.يعنی کله چي کفيل کفالت بالدرك قبول کړي.نو هله به بيع پوره کيږی.ياد عقدبيع واجبونکي او لازمونکي کفيل دي.ددي نه روسته که کفيل دا دعوه اوکړي.چه د کور مالك زه يم.اودا کور زما ملك دي.نو ګويا دا عقدماتول غواړی.کوم چي پخپله دده د ارخه پوره شوي وو.اود هغه عقد ماتولو کوښښ کول کوم چي پخپله دده د ارخه تمام شوي وی.باطل دي.په دي وجه دي مسئله کي د کفيل دا دعوه کول،چه د کور مالك زه يم. داهم باطل ده.هم دا وجه ده.که کفيل په دي مسئله کي شفيع وی.نو دده حق شفعه باطليږی.دا داسي هم وئيلي شی.چه کفيل ورانديې د بائع د ملك اقرار کړي دي.او اوس د خپل ملك دعوه کوی.نودده په دعوه کي تناقض شو.اود تناقض په صورت کي دعوه نه قبليږی.په دي وجه د کفيل دا دعوه چي د کور مالك زه يم.نه قبليږی.

وَإِنْ لَمْ تَكُنْ مَشْرُوطَةً فِيهِ اوکه کفاله بالدرك په دي بيع کي مشروط نه وی. فَالْمُرَادُ بِهَا أَحْكَامُ الْبَيْعِ نود کفاله نه مراد د بيع مستحکم وَتَرْغِيبُ الْمُشْتَرِي فِيهِ إِذْ لَا يَرْغَبُ فِيهِ اود مشتری په دي بيع کي رغبت (شوق) کول دی دُونَ الْكَفَالَةِ کله چي مشتری د کفاله نه بغير په دي بيع کي رغبت اونکړي فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الْإِقْرَارِ بِمِلْكِ الْبَائِعِ نو عقدکفاله به د بائع د ملك د اقرار په مرتبه کي راکوزولي شی.

حل اللغة: ① الترغيب-شوق پيدا کول-② ختم-مهر اولګولو-③ يحفظ-ياده اوساتی-④ الحادثة-واقعه



تشريح:- اوکه کفاله په عقدبيع کي شرط نه وی.نود کفالې مقصد عقدبيع مستحکم او مضبوطول دی. اومشتری دي عقد ارخ ته مائل کول دی.خکه چي ډيرکرته د مبيع مستحق کيدلو په يرې سره مشتری ددې مبيع اخستلو ارخ ته شوق نه کوی.نوکفيل مشتری ته اطمينان ورکوی.او وائی.چه ته کور واخله.او فکر مه کوه. داکور د بائع ملك دي.اوخدائې دي نکړی.که چا د استحقاق دعوه اوکړله.اودا کور ئې واخستلو.نود ثمن واپس کاوه ضامن زه يم.نو په دې صورت کي هم د کفيل د ارخه د بائع د ملك اقرار اوموندلې شو.اوکوم کس چې د بائع د ملك اقرار اوکړي.د هغه لپاره جائز نه دی.چه هغه ددې نه روسته د خپل مالك کيدلو دعوه اوکړي.

حاصل داچه په دې صورت کي کفاله د کفيل د ارخه ددې اقرار په مرتبه کي دې.چه بائع ددې کور مالك دې.او هرکله چې د کفالې په وجه کفيل ددې خبرې اقرار اوکړو.چه ددې کور مالك بائع دې.نو ددې نه روسته د کفيل دا دعوه چه،، زه ددې کور مالك يم،،د تناقض په وجه قابل قبول نه ده.

## د کفالت بالدرك کيدلو نه بغير د ګواهئ او مهرلګولو حکم

قَالَ فرمايي وَلَوْ شَهِدَ وَخَتَمَ اوکه يو کس ګواهی ورکړله.او مهر ئې اولګولو وَلَمْ يَكْفُلْ لَمْ يَكُنْ تَسْلِيمًا او (د درك) کفالت ئې اونکړو.نودا تسليم نه ده وَهُوَ عَلَى دَعْوَاهُ او دې به پخپله دعوه باندې قائم پاتې وی

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس يوکور خرڅ کړو.او يوسړې د کور په خرڅيدلو باندې تحريری ګواه شو.او دسخط ئې اوکړو.خپل مهر ئې اولګولو.خودا ګواه کفيل بالدرك نشو.نودا د ګواه د ارخه د بائع ملك تسليمول نه دی.يعنی دا ګواهی به ددې خبرې علامت نه وی.چه ګواه بائع د کور مالك منی.نوکه ددې نه روسته ګواه دا دعوه اوکړله.چه زه د کور مالك يم.نو دده دعوه به قابل سماعت وی.اوکه بل چا د کور د مالك کيدلو دعوه اوکړله.اوده د کور د مالك کيدلو ګواهی ورکړله.نوبيا به هم دده ګواهی قبلولې شی.

لِأَنَّ الشَّهَادَةَ لَا تَكُونُ مَشْرُوطَةً فِي الْبَيْعِ خکه چې ګواهی په بيع کي مشروط نه وی وَلَا هِيَ بِإِقْرَارٍ بِالْمِلْكِ اونه ګواهی د ملکيت اقرار دې لِأَنَّ الْبَيْعَ مَرَّةً يُوجَدُ مِنَ الْمَالِكِ خکه چې بيع کله د مالك د ارخه واقع کيږی وَتَارَةً مِنْ غَيْرِهِ اوکله د غير د ارخه واقع کيږی وَلَعَلَّهُ كَتَبَ الشَّهَادَةَ او شايد ده ګواهی خکه ليکلی وی لِيَحْفَظَ الْحَادِثَةَ چې دا واقعه ياده وی بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د تيرې شوې مسئلې،

تشريح:- دليل دادې.چه شهادت نه په بيع کي دننه مشروط دې.اونه د بائع د ملك اقرار دې.شهادت په بيع کي دننه خکه مشروط نه دې.چه شهادت د بيع مناسب نه دې.اود بائع د ملك اقرار خکه نه دې.چه بيع کله د مالك د ارخه واقع کيږی.په دې طريقه چې مالك پخپله د چا په لاس خپل مملوکه شئ خرڅ کړو. او کله د غير د ارخه واقع کيږی.په دې طريقه چې وکيل خرڅ کړو.يا فضولی خرڅ کړو.نود کور په بيع باندې ګواه کيدل به ددې خبرې اقرار نه وی.چه ده خپل مملوکه کور خرڅ کړې دې.اوهرکله چې د ګواه ګواهی د بائع دملك اقرار نه دې.نو اوس که ګواه پخپله د خپل ملك دعوه اوکړی.نو په دې سره به دعوه کي تناقض نه وی.اوهرکله چې په دعوه کي تناقض نه وی.نو دده د ملکيت دعوه به قابل توجه او قابل سماعت نه وی.په خلاف د تيره شوې مسئلې،يعنی د کفاله بالدرك.کفاله بالدرك د کفيل د ارخه د ملك اقرار وی.اوهرکله چې کفيل بالدرك د بائع د ملك اقرار اوکړو.نو اوس به ده ته د خپل ملکيت د دعوه حق نه وی.تردې که ده دعوه اوکړله.نو بيا به هم دا نه قبليږی.

سوال:باتې شوه دا خبره،چه هرکله د کور په بيع باندې ګواهی د بائع د ملك اقرار نه دې.نو بيا ددې شهادت ليکلو نه څه فائده ده؟ خواب:ددې خواب دادې.چه ممکن ده.چه ګواهی هم په دې مقصد سره ليکلې شوې وی.چه دا واقعه ياده اوساتی.چه ددې کور په اره کي داسې واقعه شوې وه.نو په دې سره د ملکيت اقرار نه لازميږی.

قَالُوا مشائخ فرمايي إِذَا كُتِبَ فِي الصَّكِّ چې کله په بيع نامه کي اوليکلی شو بَاعَ چې بائع دا کور خرڅ کړو. وَهُوَ يَمْلِكُهُ په داسې حال کي چې هغه ددې مالك وو أَوْ بَيْعًا بَاتًّا نَافِذًا يا ده په بيع قطعی نافذ سره خرڅ کړو وَهُوَ كَتَبَ شَهِدَ بِذَلِكَ او

ګواه ګواهي اوليکله.چه دي د هغه شاهد دي فَهُوَتَسْلِيمٌ نودا د ګواه د اړخه تسليم ده إِلَّا إِذَا كَتَبَ الشَّهَادَةَ عَلَى إِقْرَارِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ خو کله چي ګواه د عاقدينو په اقرار باندي ګواهي ليکلي وي.

حل اللغة: ① الصک-بيع نامه-② شهد-ګواهي ورکړه-③ تسليم-سپارل-④ المتعاقدين-تثنيه د عاقد،

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه احناف مشائخ رحمهم الله فرمائي.که په بيع نامه کي اوليکلي شو.چه بائع دا کورخرڅ کړو.په داسي حال کي چي بائع ددي مالك وو.په بيع قطعي نافذ سره ئي خرڅ کړو.او ګواه ګواهي اوليکله.چه زه ددي شاهد يم.نودا به دګواه د اړخه د بائع ملکيت تسليمول وي.ځکه چي بيع هغه وخت نافذ کيږي.کله چي کور د بائع ملکيت وي.البته که ګواه دا ګواهي اوليکله.چه زه په دي خبره ګواه يم.چه عاقدينو زما د وړاندي ددي اقرار کړي دي.چه بائع ددي کور مالك دي.نودا به هم د ګواه د اړخه د بائع ملك تسليمول نه وي.ځکه چي د عاقدينو په اقرار سره حقيقي ملکيت نه ثابتيږي.اوکه ګواه صرف دا ليکلي وي.چه زه د ايجاب او قبول شاهد يم.نو په درجه اولي به د ګواه د اړخه د بائع د ملك اقرار نه وي.

## فصل في الضمان

زباره (دا) فصل د ضمان (په بيان کي) دي.

تشريح:- په جامع صغير کي يو څو مسئلي داسي دي.چه په هغي کي د کفالت په ځائي د ضمان لفظ ذکر دي.په دي وجه علامه مرغيناني رحمه الله هغه مسئلي په خانله فصل کي هم په دي لفظ ضمان سره ذکر کړي دي.اګرچه کفالت او ضمانت دواړه په يو معنی کي دي.اوهم په دي وجه اکثرو فقهاؤ د،،باب الكفالة،، په ځائي ،،باب الضمان،، ليکلي دي.

### د وکيل او مضارب ضامن جوړيدل اود ضمان حکم

قَالَ وَمَنْ بَاعَ لِرَجُلٍ ثَوْبًا اوکه يوکس د يوسړي لپاره تهان خرڅ کړو وَضَمِنَ لَهُ الثَّمَنَ اود هغه لپاره د ثمن ضامن شو أَوْمُضَارِبٌ ضَمِنَ ثَمَنَ مَتَاعِ رَبِّ الْمَالِ يا مضارب د رب المال د سامان ضامن شو فَالضَّمَانُ بَاطِلٌ نودا ضمان باطل دي.

حل اللغة: ثوب-جامه-متاع-سامان-التزام-لازم کول-ثمن-قيمت

تشريح:- په دي عبارت کي د يوي مسئلي دوي (دوه) صورتونه ذکر دي.① يوسړي مثلاً خالد د وکالت په طريقه دوهم سړي مثلاً د حامد کپړه خرڅه کړله.او وکيل يعني خالد خپل مؤکل يعني حامد لپاره د ثمن ضامن شو.② يا مضارب د مضاربت سامان خرڅ کړو.اوخپله مضارب د رب المال لپاره د ثمن ضامن شو.نو په دي دواړو صورتونو کي ضمان باطل دي.

لِأَنَّ الْكَفَالَةَ الْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ ځکه چي کفالة د مطالبي مستلزم کاوه نوم دي وَهِيَ إِلَيْهِمَا اود مطالبي حق دي دواړو ته دي فَيَصِيرُكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ضَامِنًا لِنَفْسِهِ او په دي دواړوکي هريو به د خپل ذات لپاره ضامن وي.

تشريح:- دليل دادي.چه ضمان يعني کفالة خپل ځان باندي د مطالبي لازمولو نوم دي.يعني د کفالة په وجه مکفول له ته مکفول عنه سره د کفيل نه هم د مطالبي حق حاصل وي.او حقوق بيع چونکه عاقدينو اړخ ته واپس کيږي.په دي وجه مشتري نه د ثمن د مطالبي حق هم وکيل بالبيع او مضارب ته حاصليږي.نود عاقد کيدلو په وجه چونکه مطالبه کونکي هم دوي دي.په دي وجه ددوي ضامن کيدل خپل ځان لپاره ضامن کيدل دي.اود خپل ذات لپاره ضامن کيدل چونکه شرعاً ناجائز دي.په دي وجه د وکيل بالبيع مالك دپاره،اود مضارب رب المال لپاره د ثمن ضامن کيدل ټيك نه دي.دا داسي هم وئيلي شي.چه وکيل بالبيع او مضارب د عاقد کيدلو په وجه مطالب (دچا نه چي مطالبه کيږي) هم دي.نوهم د يوکس مطالب او



مطالب دواړه کيدل لازم شو.حالانکه د يوکس مطالب او مطالب دواړه کيدل ناجائز دي. په دي وجه به دا ضمان هم ناجائز دي.

وَلِأَنَّ الْمَالَ أَمَانَةٌ فِي أَيْدِيهِمَا اوځکه چي مال ددي دواړو په قبضه کي امانت دي وَالضَّمَانُ تَغْيِيرٌ لِحُكْمِ الشَّرْعِ او ضامن حکم د شريعت بدلول دي فَيُرَدُّ عَلَيْهِ نودا به واپس کولای شي كَاشْتِرَاطِهِ عَلَى الْمُودَعِ وَالْمُسْتَعِيرِ لکه ځنګه چي په مودع او مستعير باندي شرط لګول مردود دي.

حل اللغة: ① التغيير-بدلول-② يؤدي- ضرر رسوي-③ صفقة-عقد\معامله-④ نصيب-حصه

تشريح:- دوهم دليل دادي.چه مال د وکيل بالبيع او مضارب په قبضه کي امانت دي.نو وکيل او مضارب امين شو.او امين د امانت د مال نشي ضامن کيدلي.ځکه چي امين د امانت د مال ضامن جوړيدلو کي د شريعت حکم بدلول لازميږي.حالانکه د شريعت حکم د چا په بدلولو سره نه بدليږي.نود وکيل او مضارب ضامن کيدل به هم دوی اړخ ته غورځولي شي.يعني ددوی ضامن کيدل به شرعاً معتبر نه وي.لکه مؤدع (بفتح الدال) او مستعير باندي د ضمان شرط لګول مردود دی.مثلاً خالد خپل مال حامد سره امانت کيخودلو.اود مال مالك شرط اولګولو.که ضائع شو.نو ته به ضامن يي.نو مؤدع يعني حامد دا شرط منظور کړو.نو هم باطل دي.يعني ددي شرط باوجود که مال ضائع شو.نو مؤدع به ضامن نه وي.يا مثلاً خالد د حامد نه څه شي مستعار واخستلو.اوحامد مستعار ورکړو.دا شرط ئي اولګولو.که ضائع شو.نو ته ضامن يي.نودا شرط هم باطل دي.يعني د ضائع کيدلو په صورت کي به مستعير يعني خالد ضامن نه وي.او په مؤدع او متسعير باندي د ضمان شرط لګول ځکه مردود دی.چه دا حکم لګول د شريعت حکم متغير کول دی.اود شريعت حکم متغير کول ناجائز دی.په دي وجه به دا شرط لګول هم ناجائز وي.دا داسي ده.لکه چي په يوکس باندي سجده سهوه واجب وي.خوده د خروج صلاة په نيت سلام واړولو.نودا سلام اړول به هم په ده رد کولي شي.اودي به د لمونځ نه نه اوځي.تردي چي دده لپاره سجده سهوي اړخ ته واپس راتګ جائز دی.ځکه چي په نيت د خروج صلاة سلام اړول حکم شرع بدلول دی.په دي طريقه چي په ده کومه سجده سهوه واجب ده.ددي د ادا کاوه نه بغير د لمونځ نه وتلو لپاره سلام اړولي شوي دي.

### په شريك غلام کښي د خپل شريکوال د حصي ضامن جوړيدلو حکم

وَكَذَا رَجُلَانِ بَاعَا عَبْدًا صَفْقَةً وهم دغه ډول دوي (دوه) سړو يو غلام په يو صفقه کي خرڅ کړو وَاحِدَةً وَضَمِنَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ حِصَّتَهُ مِنَ الثَّمَنِ او په دوی دواړو کي يود خپل شريك غلام لپاره دده د برخي (حصي) د ثمن ضامن شو.

تشريح:- صورت د مسئلي دادي.که يوغلام د دوي (دوه) کسانو مشترك وي.او دواړو دا غلام د زر درهمو په عوض خرڅ کړو.او په دواړو (مشترك بائعينو) کي يوکس د خپل شريك لپاره دده د برخي (حصي) د ثمن ضامن شو.نو دا ضمان باطل دي.

لِأَنَّهُ لَوْصَحَّ الضَّمَانُ مَعَ الشَّرِكَةِ ځکه که د شرکت لپاره ضمان صحيح وي يَصِيرُضَامِنًا لِنَفْسِهِ نودي به د خپل ذات لپاره ضامن وي وَلَوْصَحَّ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ خَاصَّةً اوکه خاص طور سره دده د انډيوالان په برخه کي صحيح وي يُؤَدِّي إِلَى قِسْمَةِ الدَّيْنِ قَبْلَ قَبْضِهِ نود قبضه کاوه نه وړاندي د قرضه ويش لازميږي وَلَا يَجُوزُ ذٰلِكَ حالانکه دا جائز نه دي.

تشريح:- دليل دادي.چه دا سړي به يا د شرکت باوجود ضامن وي.مثلاً مطلقاً د نصف ثمن به ضامن وي.اويا به خاص طور باندي د خپل شريکوال د برخي (حصي) ضامن وي.که اول وي.نو دده د خپل ذات لپاره ضامن کيدل لازميږي.ځکه چي د ثمن هيڅ برخه داسي نشته.چه په هغي کي دواړه شريك نه وي.نود ثمن د کومي برخي (حصي) چي دا سړي ضامن شوي دي.په هغي کي چونکه دي پخپله هم شريك دي.په دي وجه ددي ضامن کيدل پخپله د خپل ذات لپاره ضامن کيدل دی.اود خپل ذات لپاره ضامن کيدل چونکه باطل دی.په دي وجه به په دي صورت کي ضمان باطل وي.اود خپل ذات لپاره ضامن کيدل ځکه باطل دی.چه د شريکيدلو په وجه به دا سړي مطالبه

کوي.اود ضامن کیدلو په وجه به پخپله دده نه مطالبه کولې شي.نودا سړي به مطالب او مطالب دواړه وي.حالانکه د یوکس مطالب او مطالب دواړه کیدل باطل دي.په دې وجه ضمان لنفسه باطل دې.په بقاء د شرکت سره د ضمان د بطلان دوهم دلیل دادې.چه ضامن د ضامن کیدلو په وجه کوم ثمن خپل شریك ته اداکوي.هغه به دده او دده د شریك په منځ کې مشترك وي.اود مشترك کیدلو په وجه به په دې کې د نصف واپس اخستلو اختیار وي.مثلاً ضامن خپل شریك ته پنځه سوه درهم اداکړل.نو ضامن به د شرکت په وجه دوې (دوه) نیم سوه درهم واپس اخلي.اودا دوې (دوه) نیم سوه درهم ضامن ته واپس راغلل.ځکه داسې شوه.ګویا ضامن کل دوې (دوه) نیم سوه درهم اداکړي دي.نو په دې دوې (دوه) نیم سوه درهموکې هم چونکه ضامن شریك دې.په دې وجه به په دې کې نصف یعنې پاوْباندې سل (۱۲۵) درهم واپس اخلي.اوکله چې پاوْباندې سل درهم واپس شو.نوداسې شوه.ګویا ضامن پاوْباندې سل درهم اداکړي دي.نو په دې پاوْباندې سل درهمو کې هم چونکه ضامن شریك دې.په دې وجه به په دې کې نصف یعنې شپیته او دوې (دوه) نیم درهمه واپس اخلي.اوهرکله چې دوې (دوه) نیم شپیته درهم واپس شو.نو ګویا ضامن دوې (دوه) نیم شپیته درهم اداکړي دي.نوهم دغه ډول نیم واپس اخستلو کې به آخر نتیجه دا وي.چه شریك سره به هیڅ هم پاتې نشي.او انتهاءً به ضمان باطل شي.په دې وجه مشائخ فرمائي.چه دا ضمان چونکه انتهاءً باطل دې.په دې وجه موږ ابتداءً هم د بطلان قائل شو.نو ثابته شوه.چه دا ضمان باطل دې.اوکه دوهم دې.یعنې خاص طور باندې د خپل شریك د برخې (حصې) د ثمن ضامن شوې دې.نو په دې صورت کې د قبضه نه وړاندې دین تقسیمول لازمیږي.حالانکه د قبضه نه وړاندې دین تقسیمول جائز نه دي.اود قبضه نه وړاندې د دین تقسیمول ځکه ناجائز دي.چه تقسیمول نوم دې.د برخو جلا جلا کولو.او جلا جلا کول په اعیانو او محسوساتو کې متحقق کیږي.خو په اوصافو کې نه متحقق کیږي. او دین یو وصف دې.ځکه به د دین تقسیمول هم نه متحقق کیږي.خوکله چې قبضه اوکړې شوه.نودا د اعیانو د قبیلې ځنې شو.اود اعیانو تقسیمول جائز دي.نود قبضه کاوه نه وړاندې دین چونکه یو وصف دې.په دې وجه د قبضې نه وړاندې د دین تقسیمول ناجائز دي.اود قبضې نه روسته چونکه دا د اعیانو د قبیلې ځنې شو.په دې وجه دقبضې نه روسته دین تقسیمول جائز دي.بهرحال خاص طور باندې د شریك د برخې (حصې) ضامن کیدلو په صورت کې چونکه د قبضې نه وړاندې تقسیمول لازمیږي.اود قبضې نه وړاندې تقسیمول ناجائز دي.په دې وجه به دا ضمان هم ناجائز وي.

**بِخِلَافِ مَا** په خلاف ددې **إِذَا بَاعَا بِصَفْقَتَيْنِ** کله چې دواړو په دوې (دوه) صفقوکې خرڅ کړې وي **لِأَنَّهُ لَا شِرْكَةَ** ځکه چې هیڅ شرکت نشته **أَلَا تَرَى أَنَّ لِلْمُشْتَرِي أَنْ** آیا نه ګورې چې مشتري ته اختیار دې **يَقْبَلَ نَصِيبَ أَحَدِهِمَا** چې هغه په دوی دواړو کې د یو په برخه کې بیع قبول کړي **وَيَقْبِضَ إِذَا نَقَدَ ثَمَنَ حِصَّتِهِ** اوکله چې دده د برخې (حصې) ثمن ورکړي.نو دده په برخه باندې قبضه اوکړي **وَإِنْ قَبِلَ الْكُلَّ** اګرچه د کل بیع ئې قبول کړې وي.

**تشریح:-** په خلاف د دې که دواړو خپل مشترك غلام په دوې (دوه) عقدونوکې خرڅ کړو.مثلاً یوکس جلا خپله برخه د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه کړله.او دوهم جلا خپله برخه د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه کړله.بیا په دوی کې یو د دوهم د ثمن ضامن شو.نودا ضمان صحیح دې.ځکه چې په دې صورت کې دواړوکې د هر یوحصه د دوهم د برخې (حصې) نه جلا ده.په دې وجه ثمن کې د دواړو شرکت نه ثابتیږي.او هرکله چې شرکت موجود نه دې.نو مخکنۍ خرابیانې هم نه لازمیږي.او هرکله چې مخکنۍ خرابیانې لازم نشوې.نو ضمان به هم درست وي.په دې صورت کې د دوې (دوه) صفقو کیدلو په وجه چونکه شرکت موجود نه دې.په دې وجه مشتري ته اختیار دې.چه په دواړوکې د یو بیع قبول کړي.اود دوهم بیع رد کړي.اوکه د پوره غلام بیع ئې قبول کړله.نود یو په برخه باندې د قبضه کاوه اجازت به هغه وخت وي.کله چې دده د برخې (حصې) ثمن ادا کړي.اوکه صفقه یوه وې.نو مشتري ته به اختیار نه وو.



## د بل د خراج، نوائب اود قسمت د ضمان حکم

🕮 **قَالَ وَمَنْ ضَمِنَ عَنْ آخَرَ خَرَاجَهُ وَنَوَائِبَهُ وَقِسْمَتَهُ** اوکه یوکس د بل د اړخه دده د خراج او دده د نوائبو او دده د قسمت ضامن شو **فَهُوَ جَائِزٌ** نودا جائز دې **أَمَّا الْخَرَاجُ فَقَدْ ذَكَرْنَاهُ** بهرحال خراج نو موږ دا ذکر کړې دې.

**حل اللغة:** ① **خراج**-د زمکې محصول، کوم چې د کافرنه اخستې شي-② **نوائب**-مصیبت کار-③ **قسمة**-حصه،نوبت-④ **مجرد**-صرف

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یو سړی د بل کس د اړخه دده د خراج او دده د نوائبو او دده د قسمت ضامن شو.نودا ضمان جائز دې.په خراج کې د کفاله جائز کیدلو تفصیل اګرچه وړاندې تیرشوې دې.په دې مقام کې د تمهید په طور دا خبره یاد ساته چې دخراج دوې (دوه) قسمونه دي.

①خراج موظف اود دې وضاحت دا دې چې امام المسلمین د اندازه کاوه نه روسته د چا په ذمه مقرر کړي.چه هرکال به دومره قدرې ادا کول وي. نو دلته کې د خراج نه مراد خراج موظف دې.خراج مقاسمه مراد نه دې.یعنې د خراج موظف کفاله جائز ده.ځکه چې خراج موظف داسې قرضه ده.چه د بنده ګانو د اړخه ددې مطالبه کول صحیح دي.اود کوم پور چې د بنده ګانو د اړخه مطالبه کول صحیح وي.د هغې کفاله چونکه جائز وي.په دې وجه د خراج موظف کفاله جائز ده.او خراج مقاسمه چونکه په ذمه واجب نه وي.په دې وجه به دا د پور په معنی کې نه وي.اوهرکله چې د پور په معنی کې نشو.نو ددې کفاله به هم جائز نه وي.ځکه چې کوم شئ دین او قرضه نه وي.د هغې کفال جائز نه وي.② او دوهم ډول خراج مقاسمه دې د دې وضاحت دا دې.چه امام وقت ( موجوده بادشاه) د زمکې په پیداوار کې متعینه برخه ویش کړي.مثلاً امام المسلمین د زمکې په پیداوار کې لسمه یا شلمه برخه تقسیمولو سره اخلي.

**وَهُوَ يُخَالِفُ الزَّكَاةَ** اودا د زکاة مخالف دې **لِأَنَّهَا مُجَرَّدُ فِعْلٍ** ځکه چې زکاة صرف فعل دې **وَلِهَذَا لَا تُؤَدَّى بَعْدَ مَوْتِهِ مِنْ تَرِكَتِهِ** اوهم په دې وجه دده د ترکې نه دده د مرګ نه روسته زکاة نشي اداکولې **إِلَّا بِوَصِيَّةٍ** خو په وصیت سره.

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د خراج حکم د زکاة دحکم خلاف دې.یعنې د خراج موظف کفاله جائز ده.اود زکاة کفاله جائز نه ده.او وجه د توپیر داده. چې زکاة محض یو فعل دې.اودا فعل عبادت دې.یعنې د مال د عوض نه بغیر د مال د یوې برخې (حصې) مالك کاوه نوم زکاة دې.اومال ددې واجب قائمولو یو محل دې.او مال زکاة په ده باندې مضمون هم نه وي.په چاچه زکاة واجب وي.نوکه مال هلاك شي.نوپه ده به د زکاة وغیره هیڅ شئ ضمان واجب نه وي.حاصل دا شو.چه زکاة فعل عبادت دې.اوکوم مال چې محل زکاة دې.هغه غیرمضمون دې.اوکفاله به نه د عبادت صحیح کیدله.اونه به د اموال غیرمضمونه کفاله صحیح کیدله.په دې وجه به د زکاة کفاله صحیح نه وي.او زکاة چونکه فعل دې.په دې وجه په چا چې زکاة واجب دې.دده د مرګ نه روسته دده په ترکه کې نشي اداکولې.البته که مړکیدونکي وصیت اوکړو.چه زما د مال نه زما زکاة ادا کړئ.نو دده د ترکې ځخه به اداکولې شي.

**وَأَمَّا النَّوَائِبُ** او نوائب **فَإِنْ أُرِيدَ بِهَا مَا يَكُونُ بِحَقٍّ** نوکه ددې نه مراد هغه وي **كَكَرْيِ النَّهْرِ الْمُشْتَرَكِ** لکه مشترك ویاله کنستل **وَأَجْرِ الْحَارِسِ** د څوکیدار تنخواه **وَالْمُوَظَّفِ لِتَجْهِيزِ الْجَيْشِ** او هغه کوم چې د لښکر تیارولو لپاره **وَفِدَاءِ الْأُسَارَى وَغَيْرِهَا** اود قیدیانو خلاصولو لپاره مقرر وي.او ددې نه د علاوه **جَازَتِ الْكَفَالَةُ بِهَا عَلَى الْاتِّفَاقِ** نو دداسې نوائب کفاله بالاتفاق جائز ده.

**حل اللغة:** ① **الكرى**-کنستل-② **الحارس**-څوکیدار-③ **الموظف**-ملازم-④ **تجهیز**-تیاری ⑤ **الجیش**-لښکر-⑥ **الاساری**-جمع د اسیر،قیدی-⑦ **الجبایات**-جمع د جبایة، جبري ټیکس

**تشریح:-** پاتې شو د نوائب حکم.نود نوائب دوې (دوه) قسمونه دي.یو هغه کوم چې په ځاني او حق دي.لکه مثلاً بادشاه یو داسې ویاله کنستل غواړي.چه د هیڅ چا لپاره خاص نه وي.بلکه د عامو خلګو د فائدې لپاره وي.او په

کوي.اود ضامن کيدلو په وجه به پخپله دده نه مطالبه کولي شي.نودا سړي به مطالب وي.حالانکه د يوکس مطالب او مطالب دواړه کيدل باطل دي.په دي وجه ضمان لنفسه باطل دي.په بقاء د شركت سره د ضمان د بطلان دوهم دليل دادي.چه ضامن د ضامن کيدلو په وجه کوم ثمن خپل شريك ته اداکوي.هغه به دده او دده د شريك په منځ کي مشترك وي.اود مشترك کيدلو په وجه به په دي کي د نصف واپس اخستلو اختيار وي.مثلاً ضامن خپل شريك ته پنځه سوه درهم اداکړل.نو ضامن به د شركت په وجه دوي (دوه) نيم سوه درهم واپس اخلي.اودا دوي (دوه) نيم سوه درهم ضامن ته واپس راغلل.ځکه داسي شوه.ګويا ضامن کل دوي (دوه) نيم سوه درهم اداکړي دي.نو په دي دوي (دوه) نيم سوه درهموکي هم چونکه ضامن شريك دي.په دي وجه به په دي کي نصف يعني پاوڼباندي سل[۱۲۵] درهم واپس اخلي.اوکله چي پاوڼباندي سل درهم واپس شو.نوداسي شوه.ګويا ضامن پاوڼباندي سل درهم اداکړي دي.نو په دي پاوڼباندي سل درهمو کي هم چونکه ضامن شريك دي.په دي وجه به په دي کي نصف يعني شپيته او دوي (دوه) نيم درهمه واپس اخلي.اوهرکله چي دوي (دوه) نيم شپيته درهم واپس شو.نو ګويا ضامن دوي (دوه) نيم شپيته درهم اداکړي دي.نوهم دغه ډول نيم واپس اخستلو کي به آخر نتيجه دا وي.چه شريك سره به هيڅ هم پاته نشي.او انتهاءً به ضمان باطل شي.په دي وجه مشائخ فرمائي.چه دا ضمان چونکه انتهاءً باطل دي.په دي وجه موږ ابتداءً هم د بطلان قائل شو.نو ثابته شوه.چه دا ضمان دوهم دي.يعني خاص طور باندي د خپل شريك د برخي (حصي) د ثمن ضامن شوي دي.نوبه دي صورت کي د قبضه نه وړاندي دين تقسيمول لازميږي.حالانکه د قبضه نه وړاندي دين تقسيمول جائز نه دي.اود قبضه نه وړاندي د دين تقسيمول ځکه ناجائز دي.چه تقسيمول نوم دي.د برخو جلا جلا کولو.او جلا جلا کول په اعيانو او محسوساتو کي متحقق کيږي.خو په اوصافو کي نه متحقق کيږي. او دين يو وصف دي.ځکه به د دين تقسيمول هم نه متحقق کيږي.خوکله چي قبضه اوکړي شوه.نودا د اعيانو د قبيلي څخه شو.اود اعيانو تقسيمول جائز دي.نود قبضه کاوه نه وړاندي دين چونکه يو وصف دي.په دي وجه د قبضي نه وړاندي د دين تقسيمول ناجائز دي.اود قبضي نه روسته چونکه دا د اعيانو د قبيلي څخه شو.په دي وجه دقبضي نه روسته دين تقسيمول جائز دي.بهرحال خاص طور باندي د شريك د برخي (حصي) ضامن کيدلو په صورت کي چونکه د قبضي نه وړاندي تقسيمول لازميږي.اود قبضي نه وړاندي تقسيمول ناجائز دي.په دي وجه به دا ضمان هم ناجائز وي.

**بِخِلَافِ مَا** په خلاف ددي **إِذَا بَاعَا بِصَفْقَتَيْنِ** کله چي دواړو په دوي (دوه) صفقوکي خرڅ کړي وي **لِأَنَّهُ لَا شَرِكَةَ** ځکه چي هيڅ شركت نشته **أَلَا تَرَى أَنَّ لِلْمُشْتَرِي أَنْ** آيا نه ګوري چي مشتري ته اختيار دي **يَقْبَلَ نَصِيبَ أَحَدِهِمَا** چي هغه په دواړو کي د يو په برخه کي بيع قبول کړي **وَيَقْبِضَ إِذَا نَقَدَ ثَمَنَ حِصَّتِهِ** اوکله چي دده د برخي (حصي) ثمن ورکړي.نو دده په برخه باندي قبضه اوکړي **وَإِنْ قَبِلَ الْكُلَّ** اګرچه د کل بيع ئي قبول کړي وي.

**تشريح:**- په خلاف د دي که دواړو خپل مشترك غلام په دوي (دوه) عقدونوکي خرڅ کړو.مثلاً يوکس جلا خپله برخه د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه کړله.او دوهم جلا خپله برخه د پنځه سوه درهمو په عوض خرڅه کړله.بيا په دوي کي يو د دوهم د ثمن ضامن شو.نودا ضمان صحيح دي.ځکه چي په دي صورت کي دواړوکي د هر يو حصه دوهم د برخي (حصي) نه جلا ده.په دي وجه ثمن کي د دواړو شركت نه ثابتيږي.او هرکله چي شركت موجود نه دي.نو مخکني خرابياني هم نه لازميږي.او هرکله چي مخکني خرابياني لازم نشوي.نو ضمان به هم درست وي.په دي صورت کي د دوي (دوه) صفقو کيدلو په وجه چونکه شركت موجود نه دي.په دي وجه مشتري ته اختيار دي.چه په دواړوکي د يو بيع قبول کړي.اود دوهم بيع رد کړي.اوکه د پوره غلام بيع ئي قبول کړله.نود يو په برخه باندي د قبضه کاوه اجازت به هغه وخت وي.کله چي دده د برخي (حصي) ثمن ادا کړي.اوکه صفقه يوه وي.نو مشتري ته به اختيار نه وو.



## د بل د خراج، نوائب اود قسمت د ضمان حکم

**قَالَ وَمَنْ ضَمِنَ عَنْ آخَرَ خَرَاجَهُ وَنَوَائِبَهُ وَقِسْمَتَهُ** اوکه يوکس د بل د اړخه دده د خراج او دده د نوائبو او دده د قسمت ضامن شو **فَهُوَ جَائِزٌ** نودا جائز دي **أَمَّا الْخَرَاجُ فَقَدْ ذَكَرْنَاهُ** بهرحال خراج نو موږ دا ذکر کړي دي.

**حل اللغة:** ① **خراج**-د زمکي محصول، کوم چي د کافرنه اخستي شي-② **نوائب**-مصيبت کار-③ **قسمة**-حصه،نوبت-④ **مجرد**-صرف

**تشريح:**- صورت د مسئلي دادي.که يو سړي د بل کس د اړخه دده د خراج او دده د نوائبو او دده د قسمت ضامن شو.نودا ضمان جائز دي.په خراج کي د کفاله جائز کيدلو تفصيل اګرچه وړاندي تيرشوي دي.په دي مقام کي د تمهيد په طور دا خبره ياد ساته چي دخراج دوي (دوه) قسمونه دي.

① خراج موظف اود دي وضاحت دا دي چي امام المسلمين د اندازه کاوه نه روسته د چا په ذمه مقررکړي.چه هرکال به دومره قدري ادا کول وي. نو دلته کي د خراج نه مراد خراج موظف دي.خراج مقاسمه مراد نه دي.يعني د خراج موظف کفاله جائز ده.ځکه چي خراج موظف داسي قرضه ده.چه د بنده ګانو د اړخه ددي مطالبه کول صحيح دي.اود کوم پور چي د بنده ګانو د اړخه مطالبه کول صحيح وي.د هغي کفاله چونکه جائز وي.په دي وجه د خراج موظف کفاله جائز ده.او خراج مقاسمه چونکه په ذمه واجب نه وي.په دي وجه به دا د پور په معنى کي نه وي.اوهرکله چي د پور په معنى کي نشو.نو ددي کفاله به هم جائز نه وي.ځکه چي کوم شئ دين او قرضه نه وي.د هغي کفال جائز نه وي.② او دوهم ډول خراج مقاسمه دي د دي وضاحت دا دي.چه امام وقت (موجوده بادشاه) د زمکي په پيداوار کي متعينه برخه ويش کړي.مثلاً امام المسلمين د زمکي په پيداوار کي لسمه يا شلمه برخه تقسيمولو سره اخلي.

**وَهُوَ يُخَالِفُ الزَّكَاةَ** اودا د زکاة مخالف دي **لِأَنَّهَا مُجَرَّدُ فِعْلٍ** ځکه چي زکاة صرف فعل دي **وَلِهَذَا لَا تُؤَدَّى بَعْدَ مَوْتِهِ مِنْ تَرِكَتِهِ** اوهم په دي وجه دده د ترکي نه دده د مرګ نه روسته زکاة نشي اداکولي **إِلَّا بِوَصِيَّةٍ** خو په وصيت سره.

**تشريح:**- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د خراج حکم د زکاة دحکم خلاف دي.يعني د خراج موظف کفاله جائز ده.اود زکاة کفاله جائز نه ده.او وجه د توپير داده. چي زکاة محض يو فعل دي.اودا فعل عبادت دي.يعني د مال د عوض نه بغير د مال د يوي برخي (حصي) مالك کاوه نوم زکاة دي.اومال ددي واجب قائمولو يو محل دي.او مال زکاة په ده باندي مضمون هم نه وي.په چاچه زکاة واجب وي.نوکه مال هلاك شي.نوپه ده به د زکاة وغيره هيڅ شئ ضمان واجب نه وي.حاصل دا شو.چه زکاة فعل عبادت دي.اوکوم مال چي محل زکاة دي.هغه غيرمضمون دي.اوکفاله به نه د عبادت صحيح کيدله.اونه به د اموال غيرمضمونه کفاله صحيح کيدله.په دي وجه به د زکاة کفاله صحيح نه وي.او زکاة چونکه فعل دي.په دي وجه په چا چي زکاة واجب دي.دده د مرګ نه روسته دده په ترکه کي نشي اداکولي.البته که مړکيدونکي وصيت اوکړو.چه زما د مال نه زما زکاة ادا کړئ.نو دده د ترکي څخه به اداکولي شي.

**وَأَمَّا النَّوَائِبُ** او نوائب **فَإِنْ أُرِيدَ بِهَا مَا يَكُونُ بِحَقٍّ** نوکه ددي نه مراد هغه وي **كَكَرْيِ النَّهْرِ الْمُشْتَرَكِ** لکه مشترك ويالة کنستل **وَأَجْرِ الْحَارِسِ** د څوکيدار تنخواه **وَالْمُوَظَّفِ لِتَجْهِيزِ الْجَيْشِ** او هغه کوم چي د لښکر تيارولو لپاره **وَفِدَاءِ الْأُسَارَى وَغَيْرِهَا** اود قيديانو خلاصولو لپاره مقرر وي.او ددي نه د علاوه **جَازَتِ الْكَفَالَةُ بِهَا عَلَى الِاتِّفَاقِ** نو د داسي نوائب کفاله بالاتفاق جائز ده.

**حل اللغة:** ① **الكرى**-کنستل-② **الحارس**-څوکيدار-③ **الموظف**-ملازم-④ **تجهيز**-تياري ⑤ **الجيش**-لښکر-⑥ **الاسارى**-جمع د اسير ،قيدي-⑦ **الجبايات**-جمع د جباية،جبري ټيکس

**تشريح:**- پاتي شو د نوائب حکم.نود نوائب دوي (دوه) قسمونه دي.يو هغه کوم چي په ځاني او حق دي.لکه مثلاً بادشاه يو داسي ويالة کنستل غواړي.چه د هيڅ چا لپاره خاص نه وي.بلکه د عامو خلګو د فائدي لپاره وي.او په

بیت المال کې ګنجائش نه وی.نو بادشاه په عامو خلګو باندې لږ لږ مال مقرر کړی.او لکه مثلاً د محلې د ساتنې لپاره څوکیدار ساتلې وی.او بیت المال خالی وی.نو دده د تنخواه ادا کاوه په خلګو باندې څه مال مقرر کړې شوې وی.اولکه مثلاً د کافرانو په مقابله کې د لښکر تیارولو په لحاظ خلګو باندې مال مقرر کړې شوې وی.او بیت المال خالی وی.یا مسلمانان قیدیان د کافرانو د نرغه (ګیره او ګرفت) نه د آزادولو لپاره په خلګو باندې مال مقرر کړې وی.او بیت المال خالی وی.او ددې نه علاوه په مسلمانانو باندې کومه وظیفه هم په حق او جائز طریقه باندې مقرر کړې شوې وی.نوکه د نوائبو نه دا مراد وی. نو ددې کفاله بالاتفاق جائز ده.ځکه هرهغه ټیکس کوم چې امام المسلمین د مسلمانانو د فائدې لپاره په دوی باندې واجب کړې وی.د هغې اداکول په مسلمانانو باندې واجب دی.او ددې اداکول ځکه واجب دی.چه د امام المسلمین اطاعت واجب دې.نوهر کله چې ددې نوائبو اداکول واجب دی.نودا نوائب ،، ماوجب فی الذمة،، شو.او ،، ماوجب فی الذمة،، دین وی.ځکه به دا نوائب دیون وی.اود دیونو کفاله جائز ده.ځکه به ددې کفاله هم جائز وی.

وَإِنْ أُرِيدَ بِهَا او که هغه نوائب مراد وی مَا لَيْسَ بِحَقٍّ کوم چې ناحق دی كَالْجِبَايَاتِ فِي زَمَانِنَا لکه زموږ په زمانه کې جبایات (جبری ټیکسونه)، فَفِيهِ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ (١) نو په دې کې د مشائخو اختلاف دی وَمِمَّنْ يَمِيلُ إِلَى الصِّحَّةِ او کوم خلګ چې صحت اړخ ته تلی دی الْإِمَامُ عَلِيٌّ الْبَزْدَوِيُّ هغوی کې امام علی بزدوی ﷫ دې.

تشریح:- دنوائب دوهم ډول هغه دې چې برحق نه دی.بلکه بادشاه په ظلم سره مقرر کړې وی.لکه چې په فارس وغیره ملکونوکې په درزی، رنګ ریز،او په نورو پیشه ورو او نوکرانو باندې ددوی په مزدورئ کې ماهانه یا سالانه څه ټیکس مقرر دې.او نن سبا خاص طور باندې پاکستان کې هرڅیز باندې ټیکس دې.د کور ټیکس،که سفر کوې نو ټیکس،که اخلې نو ټیکس،اوچه خرڅوې نو ټیکس،دا واړه ټیکسونه په دې دوهم ډول کې داخل دی.کوم چې په ظلم سره وصولولې شی.په شریعت کې ددې هیڅ وجوب نشته.نو په متن کې که د نوائب او ټیکسونه نه دا مراد وی نو د دې د کفالت په جواز اوعدم جواز کې د مشائخو اختلاف دې.بعض حضرات مشائخ مثلاً فخرالاسلام الامام علی بزدوی ﷫ فرمائی.چه دداسې ډول نوائبو کفاله هم جائز ده.

دلیل دادې، چې د بادشاه د اړخه کوم ټیکس هم مقرر کړې شی.که جائز او په حق طور باندې وی.اوکه په ظلم سره وی.هغه دین وی.په دې معنی چې د بادشاه د اړخه ددې مطالبه کولې شی.اوپه کفاله کې مطالبه معتبر ده.ځکه چې کفاله د مطالبې د التزام لپاره مشروع شوې ده.نوهر کله چې د هر ډول ټیکس مطالبه کولې شی.نود هر ډول ټیکس کفاله به هم ټیک وی.

اوبعض مشائخ فرمائی، چې د داسې ډول نوائبو کفاله جائز نه ده.ځکه چې کفاله د داسې شي مطالبه لازمولو لپاره مشروع شوې ده.کوم شی چې پخپله اصیل یعنی مکفول عنه باندې لازم وی.حالانکه کوم نوائب چې پخپله اصیل یعنی مسلمانانو باندې شرعاً لازم نه دی.نو ددې کفاله به هم جائز نه وی.او

وَأَمَّا الْقِسْمَةُ او پاتې شو لفظ قسمت فَقَدْ قِيلَ هِيَ النَّوَائِبُ بِعَيْنِهَا نو ویلی شوی دی.چه دا هم هغه نوائب دی أَوْ حِصَّةٌ مِنْهَا یا د نوائبو یو برخه مراد ده وَالرِّوَايَةُ بِأَوْ او روایت په لفظ د ،،او،، سره دې وَقِيلَ هِيَ النَّائِبَةُ الْمُوَظَّفَةُ الرَّاتِبَةُ او ویلی شوی دی.چه د قسمت نه مراد هغه نائبه دی.کوم چې مقرر او ثابت وی وَالْمُرَادُ بِالنَّوَائِبِ مَا يَنُوبُهُ غَيْرَ رَاتِبٍ اود نوائبو نه مراد هغه دی.کوم چې ده ته بې راتبه (هنګامی طور باندې) راپیښ شی وَالْحُكْمُ مَا بَيَّنَّاهُ اوحکم هم هغه دې.کوم چې موږ بیان کړو.

حل اللغة: بعينه-معين-الراتبة-مقررشوي-القسمة-تقسيم-الموظفة-نائبه

(١) القول الراجح هو هذا قول المصححين يعنى صحة الضمان كذا فى ردالمحتار(٣١٤/٣) والعناية (٣٣٢/٦) والبحر الرائق(٢٤٠/٦، ٢٣٨) نقلاً عن القول الراجح (١٠٠/١٢)-



تشریح:- او پاتې شو لفظ د قسمت،نو بعض حضرات وائی چه قسمت او نوائب دواړه یوڅیز دې په دې کې هیڅ توپیر نشته.نو په دې صورت کې نوائب او قسمت په منځ کې واؤ وی.او عطف به عطف تفسیری وی.اوکوم حکم چې د نوائب وی.هم هغه حکم به د ډول وی.او یاقسمت د نوائب یوه برخه ده.مثلاً د یو حادثه په موقع باندې په مسلمانانو باندې څه مقرر کړې شوی وی.لکه مثلاً پُل مات شو.ددې خرچه په واړه کلی والو باندې ویش کړې شوه.نو په یو کس چې کومه برخه راغله.هغه دده قسمت دې اوس که څوک سړې دده د اړخه کفیل شو نوجائز دې.په دې صورت کې به د نوائب او قسمت په منځ کې ،،او،، وی.او ژباړه به دا وی.چه د نوائب کفالت ئې اوکړو.یا د قسمت کفالت ئې اوکړو.او بعض حضراتو د نوائب او قسمت په منځ کې دا توپیر کړې دې.چه د قسمت نه مراد هغه نائبه (ټیکس) دې.کوم چې مستقلاً (جدا) مقرر کړې شوې وی.اودا په یوخاص وخت پابندئ سره وصول کولې شی.لکه د څوکیدار تنخواه ورکاوه لپاره په محله والو باندې ماهانه مقرر کړې شوې وی.اود نوائب نه مراد دادې.کوم چې هنګامی طور باندې کله کله مقرر کړې شی.مثلاً اچانک یو پُل مات شو.د هغې د ټیک کاوه لپاره چې کومه وظیفه په خلګو باندې مقرر کړې شی.هغې ته نائبه وائی.اود نوائب حکم وړاندې تیرشوې دې چه نوائب که جائز او برحق وی.نو ددې کفاله بالاتفاق جائز ده.اوکه ناجائز او ناحق وی.نو ددې د کفالت په جواز او عدم جواز کې د مشائخو اختلاف دې.

## پور په میعادکېنې اختلاف

وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ او که یوکس بل ته اووئیل لَكَ عَلَيَّ مِائَةٌ إِلَى شَهْرٍ چې ستا په ما باندې سل درهم د یو میاشت په پور دی. هِيَ حَالَّةٌ او مقرله اووئیل.چه دا قرضه فی الحال ده. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُدَّعِي نود مدعی قول معتبر دې وَمَنْ قَالَ اوکه یو کس اووئیل ضَمِنْتُ لَكَ عَنْ فُلَانٍ مِائَةً إِلَى شَهْرٍ چې ما ستا لپاره د فلانی د اړخه د یو میاشت په نیته باندې دسل درهمو کفالت کړې وو.وَقَالَ الْمُقَرُّ لَهُ هِيَ حَالَّةٌ او مقرله اووئیل.چه دا قرضه فی الحال ده فَالْقَوْلُ قَوْلُ الضَّامِنِ نود ضامن قول به معتبر وی.

حل اللغة: ① ماية-سل-② شهر-میاشت-③ الدین-قرض-④ التاخیر-روستوالي

تشریح:- په دې عبارت کې دوې (دوه) مسئلې ذکر دی. ① یوسړی بل کس ته اووئیل.چه ستا په ما باندې د یو میاشت په پور باندې سل درهم دی.یعنی ددې د ادا کاوه وخت یومیاشت روسته دې.او دچا لپاره ئې چې اقرار کړې وو.هغه اووئیل.چه دا پور فی الحال واجب الاداء دې.نو مقرله کوم چې فی الحال د واجب الاداء کیدلو مدعی دې.مع الیمین به دده قول معتبر نه وی. ② یوسړی بل کس ته اووئیل.چه زه د فلانی د اړخه د یو میاشت د میعاد په شرط سره د سل درهمو کفیل شوې ووم.او مقرله اووئیل.چه دا کفاله فی الحال ده.په دې کې هیڅ میعاد نشته.نود کفیل (مقر) قول به مع الیمین معتبر وی.

وَوَجْهُ الْفَرْقِ او وجه د توپیر داده أَنَّ الْمُقِرَّ أَقَرَّ بِالدَّيْنِ چې مقر د پور اقرار کړې دې ثُمَّ ادَّعَى حَقًّا لِنَفْسِهِ بیا ئې د خپل خان لپاره د یوحق دعوه اوکړله وَهُوَ تَأْخِيرُ الْمُطَالَبَةِ إِلَى أَجَلٍ اوهغه یو وخت پورې د مطالبې تاخیر دې وَفِي الْكَفَالَةِ مَا أَقَرَّ بِالدَّيْنِ او په کفاله کې مقر د پور اقرار نه دې کړې لِأَنَّهُ لَا دَيْنَ عَلَيْهِ فِي الصَّحِيحِ ځکه چې د صحیح قول مطابق په کفیل باندې قرضه نه وی وَإِنَّمَا أَقَرَّ بِمُجَرَّدِ الْمُطَالَبَةِ بَعْدَ الشَّهْرِ هغه یومیاشت روسته صرف د مطالبې اقرار کړې دې.

تشریح:- دذکرشوو دواړو مسئلو په منځ کې وجه د توپیر داده.چه د پور د اقرار په صورت کې مقر د پور اقرار کړې دې.اود خپل خان لپاره ئې د یومیاشت میعاد دعوه کړې ده.نو مقرله د پور اعتراف اوکړو.خود میعاد نه ئې انکار اوکړو.نو مقر د میعاد مدعی شو.او مقرله منکر شو.او مدعی یعنی مقر د بینه (ګواهانو) پیش کاوه نه عاجز دې.نود منکر یعنی د مقرله قول به مع الیمین معتبر وی.ځکه چې مدعی سره د بینه نه موجود کیدلو په صورت کې د منکرقول معتبر وی.او په دویمه مسئله کې یعنی د کفاله په صورت کې مقر یعنی کفیل د پور اقرار نه دې

کړي.ځکه چې د صحیح قول مطابق کفیل باندې قرضه نه واجبیږي.بلکه صرف مطالبه واجبیږي.اوده د اقرار یو میاشت روسته اوکړو.یعنی ددې اقرار نې کړې دې.چه مکفول له ته به یومیاشت روسته ما نه د مطالبې حق حاصل وی.نو لنډیز دا شوه.چه مکفول له یعنی مقرله دعوه کوی.چه ماته فی الحال د مطالبې حق حاصل دې.او کفیل یعنی مقر فی الحال د مطالبې نه انکار کوی.نو مکفول له (مقرله) مدعی شو.او کفیل (مقر) منکرشو.اود مدعی یعنی د مقرله سره چونکه بینه موجودنه دی.په دې وجه د منکر یعنی د مقرقول به مع الیمین معتبر وی.

| وَلِأَنَّ الْأَجَلَ فِي الدُّيُونِ عَارِضٌ اوځکه چې په قرضونوکې میعاد یو عارضی شئ دې حَتَّى لَا يَثْبُتَ إِلَّا بِشَرْطٍ تردې چې د شرط نه بغیر نه ثابتیږی فَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ نود هغه کس قول به معتبر وی مَنْ أَنْكَرَ الشَّرْطَ ځوك چې ددې شرط نه انکار کوی كَمَا فِي الْخِيَارِ لکه څنګه چې په خیار کې دی. |
|---|

حل اللغة: الاجل-نیټه-الدیون-جمع ددین،قرض-انکر-انکار اوکړو-الخیار-اختیار

تشریح:- دویمه وجه د توپیر داده.چې په قرضونوکې میعاد یو عارضی شئ دې.ځکه میعاد بغیر د شرط نه نه ثابتیږی.اوکوم شئ چې د شرط نه بغیر نه ثابتیږی.هغه عارضی وی.ځکه به میعاد هم په قرضونوکې یو عارضی شئ وی.هم دا وجه ده.چه په عقدبیع کې د ثمن مهراو تلف شوی څیزونو قیمتونه فی الحال واجب الاداء وی.په دې کې د شرط نه بغیر میعاد نه ثابتیږی.نوهر کله چې په قرضونوکې د شرط نه بغیر میعاد نه ثابتیږی.نو په رومبئ مسئله کې د پور د اقرار په صورت کې مقر د میعاد د شرط دعوه اوکړله.او مقرله ددې نه انکار اوکړو.او مدعی یعنی مقر سره چونکه د میعاد په شرطیت باندې بینه موجود نه دی.په دې وجه د شرط د منکر یعنی د مقرله قول به مع الیمین معتبر وی.لکه څنګه چې په خیارکې دی.یعنی که احدالمتعاقدین د خیارشرط دعوه اوکړله.او دوهم انکار اوکړو.نومدعی سره د بینه نه کیدلو په صورت کې به د منکر قول مع الیمین معتبر وی.

| أَمَّا الْأَجَلُ فِي الْكَفَالَةِ باقې شو په کفاله کې میعاد فَنَوْعٌ مِنْهَا نو هغه ددې یو ډول دې حَتَّى يَثْبُتَ مِنْ غَيْرِ شَرْطٍ تردې چې د شرط نه بغیر میعاد ثابتیږی بِأَنْ كَانَ مُؤَجَّلًا عَلَى الْأَصِيلِ په دې طریقه چې په اصیل باندې قرضه میعادی وی. |
|---|

تشریح:- او پاتې شوه کفاله.نو په دې کې میعاد عارضی شئ نه وی.بلکه میعاد د کفاله یو نوع دې.ځکه چې د کفاله دوې (دوه) قسمونه دی.① کفاله معجل ② کفاله مؤجل....لکه ناطق یو نوع دې.ځکه چې د حیوان دوې (دوه) نوعه دی.① حیوان ناطق ② حیوان غیر ناطق.نو لکه څنګه چې ناطق د بعض حیوان د ذاتیاتو څخه دې.دغه ډول معیاد هم د کفاله مؤجل د ذاتیاتو څخه دې.هم دا وجه ده.چه په کفاله مؤجل کې میعاد د شرط نه بغیر ثابتیږی.په دې طریقه چې هرکله اصیل یعنی مکفول له باندې میعادی قرضه وی.نودا میعاد د کفیل په حق کې هم ثابتیږی.ځکه چې کفیل د کفاله یو نوع یعنی د کفاله مؤجل اقرار کړې دې.اوهر کله چې ده د کفاله د یو نوع اقرار کړې دې.نود دوهم نوع حکم به نشی کولې.اوهرکله چې د کفاله مؤجل په اقرار کاوه سره د دوهم نوع یعنی د کفاله معجل حکم نشی کولې.نود کفاله په صورت کې دمقر قول معتبر وی.د مقرله قول به معتبر نه وی

| وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ أَلْحَقَ الثَّانِيَ بِالْأَوَّلِ او امام شافعی ثانی د اول سره لاحق کړې دې وَأَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ فِيمَا يُرْوَى عَنْهُ أَلْحَقَ الْأَوَّلَ بِالثَّانِي او امام ابویوسف د خپل نوادر په روایت کې اول د ثانی سره لاحق کړې دې وَالْفَرْقُ قَدْ أَوْضَحْنَاهُ مورد فرق په وضاحت سره بیان کړې دې. |
|---|

تشریح:- علامه مرغینانی فرمائی.چه امام شافعی دویمه مسئله یعنی د کفاله مسئله، رومبئ مسئلې یعنی د اقرار مسئلې سره لاحق کړې ده.یعنی ددوی په نیز دواړو مسئلوکې به د مقرله قول معتبر وی.او امام ابویوسف رومبئ مسئله دویمې مسئلې سره لاحق کړې ده.یعنی په دواړو مسئلوکې به د مقر قول معتبر وی.علامه بدرالدین عینی او علامه ابن الهمام اود هدایې نورو شارحینو ذکرکړی دی.چه د امام شافعی او امام



ابویوسف د قول په منتقل کولوکې د کاتب سهوه ده.ګنی صحیح ددې په عکس دې.یعنی امام شافعی رومبئ مسئله دویمې سره لاحق کړې ده.او امام ابویوسف دویمه مسئله رومبئ سره لاحق کړې ده.

د امام شافعی د قول وجه داده.چه د پور دوې (دوه) قسمونه دی.① میعادی ② غیرمیعادی.نو هرکله چې د میعادی پور اقرار اوکړی.نو دوهم ډول یعنی غیرمیعادی قرضه به نه لازمیږی.بلکه میعادی قرضه به لازم وی.اوهرکله چې میعادی قرضه لازم شوه.نود مقر قول به معتبر وی.لکه څنګه چې د کفاله په صورت کې د مقر یعنی د کفیل قول معتبر وی.د حضرت امام ابویوسف د قول وجه داده.چه په دویمه مسئله کې کفیل او مکفول له دواړو د مال په واجبیدلو باندې اتفاق کړې دې.یعنی کفیل هم اقرار کوی.چه په مکفول عنه باندې سل درهمه دی.او زه کفیل یم.او مکفول له هم ددې تصدیق کوی.بیا په دوی کې یو یعنی کفیل د میعاد دعوه اوکړله.او مکفول له ددې انکار اوکړو.او مدعی یعنی کفیل سره چونکه بینه موجود نه دی.په دې وجه د منکر یعنی د مکفول له قول به معتبر وی.لکه څنګه چې د پور د اقرار په صورت کې د مقرله قول معتبر وی.زموږ د اړخه ځواب دادې.چه رومبئ مسئله په دویمې مسئلې باندې قیاس کول لکه څنګه چې امام شافعی کړی دی.او دویمه مسئله په رومبئ مسئلې باندې قیاس کول لکه څنګه چې امام ابویوسف کړی دی.دواړه فاسد دی.ځکه چې په پور کې میعاد یو عارضی شئ دې.او ددې دعوه د اصل موافق ده.نو په دې توپیر سره یو په دوهم باندې قیاس کول به څنګه صحیح وی.

### په مستحق وینځه کېدو د مشتري کفیل بالدرك طرف ته د رجوع کولو حکم

| قَالَ وَمَنِ اشْتَرَى اوکه یوکس یوه وینځه واخستله جَارِيَةً فَكَفَلَ لَهُ رَجُلٌ بِالدَّرْكِ بیا دده لپاره یوسړې د درك کفیل شو فَاسْتُحِقَّتْ بیا دا وینځه مستحق شوه لَمْ يَأْخُذِ الْكَفِيلَ نو مشتری د کفیل نه نشی اخستې حَتَّى يُقْضَى لَهُ بِالثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ (1) تردې چې مشتری لپاره په بائع باندې د ثمن فیصله اوکړې شی. |
|---|

حل اللغة: ① استحقت-بل څوك ددې وینځې حقدار شو-② ردالثمن-ثمن واپس کول-③ ینتقض-ماتوی

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی یوه وینځه واخستله.بیا یو سړې د مشتری لپاره د درك کفیل شو.یعنی ده مشتری ته اووئیل.که بل چا په تا باندې استحقاق ثابت کړو.اودا وینځه نې واخستله.نو زه ستا د ثمن کفیل یم.بیا دا وینځه مستحق شوه.یعنی چا د استحقاق دعوه اوکړه.اودا ئې ثابته کړه.او قاضی د استحقاق مدعی لپاره د وینځې فیصله اوکړله.نو مشتری ته به د کفیل نه د ثمن د مطالبې حق هغه وخت حاصل وی.کله چې قاضی د مشتری لپاره په بائع باندې د ثمن واپس کاوه حکم اوکړی. او ترکومه پورې چې قاضی مشتری لپاره په بائع باندې د ثمن واپس کاوه حکم اونکړی.ترهغه وخته پورې به مشتری ته د کفیل نه د مطالبې حق حاصل نه وی.اوهرکله چې قاضی مشتری لپاره په بائع باندې د ثمن واپس کاوه حکم اوکړو.نو مشتری ته اختیار دې.که غواړی.نود بائع نه دې مطالبه اوکړی.اوکه غواړی. نود کفیل نه دې مطالبه اوکړی.بیا که کفیل د بائع په حکم سره کفیل شوې وو.نودې به د بائع نه واپس اخلی.

| لِأَنَّ بِمُجَرَّدِ الِاسْتِحْقَاقِ لَا يَنْتَقِضُ الْبَيْعُ عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ ځکه چې صرف د استحقاق په وجه د ظاهرالروایة مطابق بیع نه ماتیږی مَا لَمْ يُقْضَ لَهُ بِالثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ ترکوم وخته پورې چې مشتری لپاره په بائع باندې د ثمن فیصله اونکړې شی فَلَمْ يَجِبْ لَهُ عَلَى الْأَصِيلِ رَدُّ الثَّمَنِ نو ترکومه پورې چې په اصیل (بائع) باندې ثمن واپس کول واجب نه وی فَلَا يَجِبُ عَلَى الْكَفِيلِ نو په کفیل به هم واجب نه وی. |
|---|

(1) القول الراجح هو هذا ظاهر الرواية كذا في الكفاية (۶\۳۳۵) والعناية على هامش الفتح (۶\۳۳۵) وردالمحتار (۴\۳۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۰۲)_

تشریح:- دلیل دادي چه د قاضی مستحق لپاره د استحقاق حکم کاوه سره د ظاهرالروایة مطابق ماتیږي. بلکه بیع به هغه وخت ماتیږي. کله چې قاضی مشتري لپاره په بائع باندې د ثمن واپس کولو حکم اوکړي. خکه کیداې شي چه مستحق بائع ته د بیع اجازت ورکړي. که د وینځې ثمن غلام وي. او بائع د مستحق لپاره د قاضی دحکم نه روسته دا غلام آزاد کړې وي. نودا غلام به د بائع د اړخه آزاد وي. نوهرکله چې د مستحق لپاره د استحقاق حکم کاوه نه روسته بیع نه فسخ کیږي. نو په اصیل یعنی بائع باندې ثمن واپس کول هم واجب نشو. اوکله چې په اصیل یعنی بائع باندې ثمن واپس کول واجب نشو. نو په کفیل به هم د ثمن مطالبه واجب وي. اوهرکله چې په کفیل باندې د ثمن مطالبه واجب نشوه. نو مشتري ته به د کفیل نه د مطالبې حق هم حاصل نه وي. البته که قاضی په بائع باندې د ثمن واپس کاوه حکم اوکړي. نو بیع به فسخ وي. اوپه بائع به ثمن واپس کول واجب وي. اوهرکله چې په بائع باندې ثمن واپس کول واجب شو. نو په کفیل به هم د ثمن مطالبه واجب وي. بهرحال دا خبره ثابته شوه. چه د مستحق لپاره د استحقاق حکم کاوه نه روسته ترکومه پورې چې قاضی په بائع باندې د ثمن واپس کاوه حکم اونکړي. ترهغه وخته پورې مشتري ته د کفیل نه د ثمن د مطالبې اجازت نشته.

بِخِلَافِ الْقَضَاءِ بِالْحُرِّيَّةِ په خلاف د آزادئ د فیصلې لِأَنَّ الْبَيْعَ يَبْطُلُ بِهَا چې د آزادئ فیصلې سره بیع باطلیږي لِعَدَمِ الْمَحَلِّيَّةِ خکه چې محل د بیع معدوم دې فَيَرْجِعُ عَلَى الْبَائِعِ وَالْكَفِيلِ نو مشتري به په بائع او مشتري دواړو باندې رجوع کوي.

حل اللغة: ① الحریة-ازادی-② یبطل-باطلیږی-③ الاستحقاق-مستحق ګرځیدل-④ اوائل-جمع د الاول، شروع

تشریح:- دا عبارت د یو سوال خواب دې. سوال دادې. چه هم په دې مسئله کې که وینځې د خپل ځان آزادیدلو دعوه اوکړله. اوپه ګواهانو سره نې دا ثابته کړله. او قاضی ددې د آزادولو حکم ورکړو. نو مشتري ته به د کفیل نه د مطالبې حق حاصل نه وي. نو ددې دواړو په منځ کې څه توپیر دې؟ خواب "ددې خواب او ددې دواړو په منځ کې وجه د توپیر داده. چه هرکله قاضی د وینځې د آزادیدلو حکم ورکړو. نو وینځه چونکه د بیع محل پاتې نشوه. په دې وجه به د وینځې بیع باطل وي. او هرکله چې بیع باطل شوه. نو مشتري خپل ثمن د بائع نه واپس هم اخستلې شي. اود کفیل نه هم وصولولې شي. اود استحقاق حکم کاوه سره چونکه بیع نه فسخ کیږي. په دې وجه صرف د استحقاق حکم کاوه نه روسته مشتري ته نه د بائع نه د ثمن واپس اختسلو اجازت شته. اونه د کفیل نه د مطالبې اجازت شته.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اود امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ يَبْطُلُ الْبَيْعُ بِالِاسْتِحْقَاقِ چې د استحقاق په وجه بیع باطلیږي فَعَلَى قِيَاسِ قَوْلِهِ يَرْجِعُ بِمُجَرَّدِ الِاسْتِحْقَاقِ نود امام ابویوسف رحمه الله په قول باندې قیاس کاوه سره مشتري صرف د استحقاق په وجه کفیل اړخ ته رجوع کوي وَمَوْضِعُهُ أَوَائِلُ الزِّيَادَاتِ فِي تَرْتِيبِ الْأَصْلِ اودا مسئله د زیادات په پیل کې اصلي ترتیب کې ذکر ده.

تشریح:- د حضرت امام ابویوسف رحمه الله نه په امالی کې روایت دې. چه د قاضی صرف د استحقاق په حکم کاوه سره بیع باطلیږي. اوهرکله چې صرف د استحقاق په حکم کاوه سره بیع باطلیږي. نو ددې روایت مطابق به مشتري ته د کفیل نه د مطالبې حق حاصل وي. اګرچه قاضی بائع باندې د ثمن واپس کاوه حکم نه وي کړې. دا مسئله د امام محمد رحمه الله ترتیب کړې شوی زیادات په پیل کې ده.

علامه مرغینانی رحمه الله ددې مسئلې حواله ور کاوه کې فرمانې. چه دا مسئله د زیادات په پیل کې ده. خود زیادات نه مراد د امام محمد رحمه الله ترتیب شوې زیادات دې. د شیخ زعفرانی رحمه الله مرتب زیادات مراد نه دې.

امالی اوزیادات نه څه مراد دی؟ زده کړه دا خبره چې حضرت امام ابویوسف رحمه الله به چې امام محمد رحمه الله ته د کومو مسئلو املاء کوله. او بابونه به نې متعین کول. د هغه مسئلو مجموعې نوم ،،امالی،، دې. چه دا په حقیقت کې د امام ابویوسف رحمه الله تصنیف دې. او بعض مسئلې کومې چې ددې بابونو سره متعلق وې. د هغې اضافه امام محمد رحمه الله دخپل اړخه کړې ده. ددې مسئلو د مجموعې نوم ،، زیادات،، دې چه دا په حقیقت کې د امام محمد رحمه الله تصنیف دې. امام ابویوسف رحمه الله چې کله ددې کتاب املاء اوکړله نو ددې پیل نې د کتاب المأذون نه فرمائیلې وه. امام محمد رحمه الله هم دغه ترتیب تبرکاً بدل نکړو. خو شیخ زعفرانی رحمه الله د زیادات ترتیب بدل کړو او په دې ترتیب سره یې مرتب کړو. په کوم ترتیب چې زموږ په زمانه کې ،، زیادات،، موجود دې.



## د عهدې ضامن کیدلو حکم

وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا اوکه یو کس یو غلام واخستلو فَضَمِنَ لَهُ رَجُلٌ بِالْعُهْدَةِ بیا دده لپاره یوسړي د عهدې ضامن شو فَالضَّمَانُ بَاطِلٌ نودا ضمان باطل دې لِأَنَّ هَذِهِ اللَّفْظَةَ مُشْتَبِهَةٌ خکه چې دا لفظ مشتبه دې قَدْ تَقَعُ عَلَى الصَّكِّ الْقَدِيمِ کله د عهدې لفظ پخوانی دستاویز( لوظ نامه) ته هم ونیلې شي وَهُوَ مِلْكُ الْبَائِعِ حالانکه دا د بائع ملک دې فَلَا يَصِحُّ ضَمَانُهُ نو ددې ضمان صحیح نه دې وَقَدْ تَقَعُ عَلَى الْعَقْدِ وَعَلَى حُقُوقِهِ اوکله دا لفظ عقد او ددې د حقونو ته ونیلی شي وَعَلَى الدَّرَكِ وَعَلَى الْخِيَارِ او کله د ضمان بالدرک ته او کله خیار ته( ونیلې شي)

حل اللغة: ① الصک-دستاویز-② تقع-واقع کیږي-③ ضمان-ضمانت-④ استعمل-استعمال شوې

تشریح:- دضمان یو ډول ضمان عهددې، دا ډول په اتفاق سره باطل دې د دې د بطلان وجه دا ده. چه د لفظ عهده نه مراد مشتبه او مجهول دې. خکه چې لفظ عهده کله زړه او پخوانۍ بیع نامه او دستاویزاتو ته ونیلې شي. اوکله عقد ته، کله حقوقو د عبد ته، کله درک ته ونیلی شي اوکله خیارشرط ته هم ونیلې شي.

وَلِكُلٍّ ذَلِكَ وَجْهٌ اود هریو لپاره وجه موجود ده. فَتَعَذَّرَ الْعَمَلُ بِهَا نو په دې باندې عمل کول متعذر دی.

تشریح:- په متن کې فرمایې چې په هریو باندې د دې د اطلاق کیدو لپاره مناسب وجه ده لکه پخوانو دستاویزاتو ته خکه ونیلې شي. چه پخوانې دستاویز د ،،کتاب العهد،، پشان یوه وثیقه ده. نو ددې وثیقې نوم عهده ایخودلې شوې دې. او عقد ته خکه ونیلې شي. چه عهده د عهد نه ماخوذ ده. او عهداو عقد چونکه دواړه یو دی. په دې وجه د عهد لفظ عقد ته هم ونیلې شي. او حقوق د عقد چونکه د عقد د ثمراتوځنې دی. په دې وجه دعهده د لفظ اطلاق په حقوق عقد باندې هم کیداې شي. اودرک ورته خکه وانې چې کفیل د بایع نه ثمن واپس اخلی کله چې کفیل د ثمن مستحق شي. او خیارشرط ته خکه ونیلې شي. چه په حدیث کې دی. «عهدة الرقيق ثلاثة أيام» یعنی د غلام خیارشرط درې ورځې دی.

اوس حاصل دا شو. که د لفظ عهده نه زړه او پخوانۍ بیع نامه او دستاویز مراد وي. نود مشتري لپاره به د بائع د اړخه ددې د ستاویز ضامن کیدل خکه باطل دی. چه دا دستاویز د بائع ملک دې. او په بائع باندې مضمون نه دې. که د بائع سره دا دستاویز هلاک شو. نو په بائع باندې ددې ضمان نه واجبیږي. او وړاندې تیرشوی دی. چه کوم شې په اصیل ( مکفول عنه ) باندې مضمون نه وي. د هغې کفاله او ضمان هم نه صحیح کیږي. په دې وجه به ددې دستاویز کفاله صحیح نه وي. نوهرکله دا دستاویز د بائع ملک دې. اود بائع به قبضه کې دې. نو کفیل به ددې په سپارلو باندې قادر نه وي. اوکفیل چې په کوم شي باندې قادر نه وي. د هغې کفاله صحیح نه وي. په دې وجه د د ستاویز کفاله به هم صحیح نه وي. بهرحال هرکله چې د لفظ عهده مراد مشتبه اومجهول دې. یعنی هرکله چې لفظ عهده په متعددو معانو باندې ونیلې شي. او په هرمعنی باندې محمول کول جائز دی. نو ترکومه پورې چې کفیل په دې لفظ سره خپل مراد بیان نکړي. په هغې به عمل کول متعذر وي. نوهرکله چې د مراد مجهول کیدلو په وجه په دې باندې عمل کول متعذر دی. نو په دې لفظ سره به ضمان او کفاله هم باطل وي.

بِخِلَافِ الدَّرَكِ په خلاف د لفظ درک لِأَنَّهُ اسْتُعْمِلَ فِي ضَمَانِ الِاسْتِحْقَاقِ عُرْفًا خکه چې لفظ درک په عرف کې په ضمان د استحقاق کې مستعمل دې.

تشریح:- د ضمان دوهم ډول ضمان بالدرک دې. او دا بالاتفاق خکه جائز دې. چه لفظ درک په لغت کې اګرچه په متدد( ګڼو) معانو استعمالیږي. خو په عرف عام کې صرف په ضمان استحقاق کې مستعمل دې. یعنی د ضمان

درک مطلب دادې.چه کفیل مشتري ته اوونیل.که مبیع مستحق شو.نود ثمن واپس کاوه کفیل او ضامن زه یم.نوهرکله چې ضمان درک عرفاً په ضمان استحقاق کې مستعمل دې.نو په دې به عمل کول متعذر نه وی.اوهرکله چې په دې باندې عمل کول متعذر نه دی.نو ضمان بالدرک جائز دې.

## د خلاصې د ضمان حکم

وَلَوْضَمِنَ الْخَلَاصَ اوکه چا د خلاص ضمانت اوکړو لَايَصِحُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز صحیح نه دي لِأَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنْ تَخْلِيصِ الْمَبِيعِ خکه چې ضمان خلاص نوم دې وَتَسْلِيمِهِ د مبیع د خالص سپارلو لَامَحَالَةَ وَهُوَغَيْرُقَادِرٍعَلَيْهِ حالانکه کفیل په دې باندې قادر نه دې.

تشريح:- د ضمان دریم ضمان خلاص دې د ضمان خلاص مطلب دادې.چه کفیل مشتري ته اوونیل.چه زه ستا لپاره د مبیع خلاصولو ضامن یم.نودا ضمان د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز صحیح دې.

د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې.چه د خلاص مطلب دادې.مبیع د استحقاق وغیره نه خالص سپارل. حالانکه کفیل حتمی طور باندې په دې باندې قادر نه دې.خکه ممکن ده.چه څوک سړې خپل استحقاق ثابت کړو.او مبیع ئې واخستلو.نو هر کله چې یوکس خپل استحقاق ثابت کړی.او مبیع واخلی.نو کفیل په مبیع سپارلو باندې قادر پاتې نشو.اوهرکله چې کفیل په مبیع سپارلو باندې قادر پاتې نشو.نو ګویا کفیل خپل ځان باندې داسې شی لازم کړې دې.چه دهغې په سپارلو باندې قادر نه دې.اوداسې شی لازمول،چه ددې په سپارلو باندې قادر نه وی.باطل دې.په دې وجه ضمان خلاص باطل دې.

وَعِنْدَهُمَا هُوَبِمَنْزِلَةِ الدَّرَكِ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز خلاص په منزله د درک دې وَهُوَتَسْلِيمُ الْمَبِيعِ أَوْقِيمَتِهِ اوهغه مبیع سپارل یا ددې قیمت سپارل دی فَصَحَّ (۱) نو ضمانت صحیح دې.

تشريح:- صاحبین فرمایي چې دا په منزله د درک دې او درک تسلیم د مبیع یا د هغې قیمت ته وائی نو دا کفالت صحیح دې. د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه خلاص د درک په مرتبه کې دې.یعنی کفیل مشتري ته اوونیل.که د مبیع په سپارلو باندې قادر شوم.نو مبیع به سپارم.اوکه د مبیع په سپارلو باندې قادر نه شوم.نو ددې ثمن به سپارم.بهرحال ضمان خلاص د ضمان درک په مرتبه کې دې.او ضمان درک بالاتفاق جائز دې.خکه به ضمان خلاص هم جائز وی.

# باب كفالة الرجلين

ژباړه (دا) باب د دوې (دوه) سړو د کفالت (په بیان کې) دې.

تشريح:- ① د یو سړی کفالت په منزله د مفرد دې.اود دوې (دوه) کسانو کفالت په منزله د مرکب دې.او مفرد د مرکب نه مقدم وی.په دې وجه کفالة واحد وړاندې او کفالة اثنین روستو ذکر کړې شوه. ② د دوو سړو د کفالت ذکر ئې د یو سړی د کفالت نه خکه موخر کړلو چې چونکه تبعاً د دوو عدد د یونه روسته وی.په دې وجه وضعاً هم دا موخر کړې شو.چه وضع د طبع مناسب شی.

## د دوې (دوه) قرضدارو د یوبل کفیل جوړیدل اود رجوع کولو حکم

وَإِذَاكَانَ الدَّيْنُ عَلَى اثْنَيْنِ که قرضه په دوې (دوه) کسانو باندې وی وَكُلُّ وَاحِدٍمِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ او په دې دواړوکې هریوکس دخپل انډیوالان د اړخه کفیل دې كَمَاإِذَااشْتَرَيَاعَبْدًابِأَلْفِ دِرْهَمٍ مثلاً دوې (دوه) سړو د زر درهمو په عوض یو غلام واخستلو مثلاً وَكَفَلَ كُلُّ وَاحِدٍمِنْهُمَاعَنْ صَاحِبِهِ او په دواړوکې هریوکس د خپل

(۱) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في الكفاية (۳۳۷/۶) وردالمختار (۳۰۱/۱۴)-



انډیوالان د اړخه کفیل شو فَمَاأَدَّى أَحَدُهُمَا نو په دې دواړوکې چې کوم یوکس څه اداکړل لَمْ يَرْجِعْ عَلَى شَرِيكِهِ هغه د خپل شریك نه واپس نشی اخستې حَتَّى يَزِيدَمَايُؤَدِّيهِ عَلَى النِّصْفِ تردې چې څه اداکوی.که د نصف نه زیات شی. فَيَرْجِعُ بِالزِّيَادَةِ نودې به زیاتی واپس اخلی.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که قرضه په دوې (دوه) کسانو وی.مثلاً دوې (دوه) سړو مشترك طور باندې د زر درهمو په عوض یو غلام واخستلو.یا مشترك طور باندې دواړو سړو یو زر درهم پور واخستل.او په دې دواړو کې هر یوکس د خپل شریك د اړخه کفیل شو.نو په دې دواړوکې که یو څه رقم اداکړو.نوده ته به د خپل شریك د واپس اخستلو اختیار نه وی.خو که اداکړې شوې رقم د نصف نه زیات وی.نودې زیاتی مقدار دخپل شریك نه واپس اخستلې شی.مثلاً یوشریك بائع ته یا قرضخواه ته شپږ سوه درهم ادا کړل. نودې د خپل شریك نه سل درهم واپس اخستلې شی.

لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍمِنْهُمَافِي النِّصْفِ أَصِيلٌ خکه چې په دې دواړو کې هریو په یو نصف کې اصیل وَفِي النِّصْفِ الْآخَرِكَفِيلٌ او په دوهم نصف کې کفیل دې. وَلَامُعَارَضَةَ بَيْنَ مَاعَلَيْهِ بِحَقِّ الْأَصَالَةِ وَبِحَقِّ الْكَفَالَةِ اوبه ده چې کوم نصف حق د اصالت دې.او کوم چې په حق د کفالت دې.په دې دواړوکې هیڅ معارضه نشته لِأَنَّ الْأَوَّلَ دَيْنٌ وَالثَّانِي مُطَالَبَةٌ خکه چې اول دین دې.او ثاني مطالبه ده ثُمَّ هُوَتَابِعٌ لِلْأَوَّلِ بیا ثاني د اول تابع دې فَيَقَعُ عَنِ الْأَوَّلِ نو ادا کړې شوې به د اول نه واقع وی وَفِي الزِّيَادَةِ لَامُعَارَضَةَ اود نصف نه په زیاتی کې هم څه معاوضه نشته فَيَقَعُ عَنِ الْكَفَالَةِ خکه به د نصف نه زیات د کفالې نه واقع وی.

تشريح:- دلیل دادې.چه په دواړو شریکانوکې هر یو په نصف درهمو یعنی پنځه سوه درهموکې اصیل دې.او په نصف یعنی نورو پنځه سوه کې کفیل دې.یعنی په شریکینوکې هریو باندې پنځه سوه درهم د کفالت په حق سره واجب دی.اوکوم دراهم چې په حق د اصالت سره واجب دی.اوکوم چې په حق د کفالت سره واجب دی. ددې په منځ کې په حقیقت کې هیڅ معارضه نشته.خکه چې کوم دراهم په حق د اصالت سره واجب دی.هغه اقوی دی.او کوم چې په حق د کفالت سره واجب دی.هغه ددې په مقابله کې اضعف دی.خکه چې کوم په حق د اصالت سره واجب دی.هغه پور دی.اوکوم چې په حق د کفالت سره واجب دی.د هغې صرف مطالبه واجب ده.په کفیل باندې دین نه واجبیږی.اودا خبره منلې شوې ده.چه د دین د مطالبې په مقابله کې دین اقوی وی.او مطالبه د دین، د دین تابع وی.خکه چې مطالبه د دین، د دین نه بغیر ممکن نه ده.نو کفاله یعنی د دین مطالبه تابع شوه.او اصالت یعنی دین متبوع شو.او متبوع به په نسبت د تابع اقوی وی.په دې وجه کوم دراهم چې په حق د اصالت سره واجب دی.یعنی پور دی.هغه اقوی دی.اوکوم چې په حق دکفالت سره واجب دی.یعنی صرف مطالبه د دین ده.هغه اضعف دې.او په اضعف کې په حقیقت کې هیڅ معارضه نه وی.خکه چې د معارضه لپاره دواړو اړخ ته په قوت او ضعف کې برابریدل ضروری دی.نو ثابته شوه.چه د،، ما علیه بحق الاصالة،،اود،، ما علیه بحق الكفالة،،په منځ کښې هیڅ معارضه نشته.اوهرکله چې د،، ما علیه بحق الاصالة،،اود،، ما علیه بحق الكفالة،،په منځ کښې هیڅ معارضه نشته.نو په شریکانوکې چې کوم یوکس نصف یعنی پنځه سوه درهمو پورې چې کوم درهم اداکوی.هغه به اقوی یعنی،، ماعلیه بحق الاصالة،، اړخ ته ګرځولې شی.اودا به وئیلې شی.چه ده هغه دراهم اداکړې دی.کوم چې په ده باندې پور دی.اوهرکله چې ده خپله قرضه اداکړې ده.نوده ته د خپل شریکوال نه د واپس اخستلو اختیار نه وی.حاصل دا شو.چه په ادا کاوه کې به،، ما علیه بحق الاصالة،،یعنی پور ته په،، ما علیه بحق الكفالة،،باندې ترجیح حاصل وی. او پنځه سوه پورې به د پور اداکول شمارلې کیږی.د ماعلیه بحق الكفالة ادائیګی به نشی شمارلې.اود پنځه سوه نه په زیاتوکې من کل وجه هیڅ معارضه نشته.خکه چې د پنځه سوه نه په زیاتی په ده باندې بحق اصالة واجب نه دی.بلکه د پنځه سوه نه زیاتی بحق کفالت واجب دی.اوهرکله چې د پنځه سوه نه زیاتی بحق کفالت واجب دی.نود پنځه سوه نه د زیاتو د کوم مقدار چې اراده کوی.هغه به بحق کفالت شمارلې کیږی.یعنی دا به وئیلې شی.چه ده د کفیل کیدلو په وجه دا زیاتی مقدار د خپل شریك د اړخه اداکړې دې.او

کفيل چې هرکله د مکفول عنه د اړخه مال اداکړی، نو کفيل ته د مکفول عنه نه د واپس اخستلو اختيار وی، په دې شرط چې د مکفول عنه په حکم سره کفيل شوی وی. په دې وجه په دې مسئله کې اداکونکی شريك ته دا اختيار وی، چه دې د پنځه سوه نه زياتی د خپل دوهم شريکوال نه واپس واخلی.

وَلِأَنَّهُ لَوْ وَقَعَ فِي النِّصْفِ عَنْ صَاحِبِهِ او ځکه که په نصف کې دده د انډيوالان د اړخه واقع شوه فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ او هغه دده نه واپس واخلی فَلِصَاحِبِهِ أَنْ يَرْجِعَ نو دده انډيوالان ته به هم د واپس اخستلو اختيار وی. لِأَنَّ أَدَاءَ نَائِبِهِ كَأَدَائِهِ ځکه چې دده دنائب اداکول دده د ادا کاوه پشان دی فَيُؤَدِّي إِلَى الدَّوْرِ نو دا به دَور (تسلسل) سبب وی.

حل اللغة: ① وقع-واقع شو-② يودی-خبره ځی-③ الدور-تسلسل-④ يرجع-رجوع کوی

تشريح:- د دوهم دليل نه مخکې دا په ذهن کې کينوئ، چه په عبارت کې د دور نه حقيقتاً دور مراد نه دې بلکه تسلسل مراد دې. او تسلسل لاآلی نهايه باطل دې. دويمه خبره دا چې جزء لايتجزی باطل دې. يعنی داسې هيڅ جزء نشته چه ددې ويش او تجزی نشی کيدلې. اوس به ددې دليل حاصل داوی، چه د احدالشريکينو د نصف دين ادا کاوه په صورت کې د دوهم اړخ ته رجوع کاوه اختيار په دې وجه نه دې ورکړې شوې، چه د رجوع اختيار ور کاوه په صورت کې تسلسل لازميږی.

علامه ابن الهمام ﷫ ددې دليل تشريح داسې کړې ده. که يوشريك مثلاً دوې (دوه) سوه درهم اداکړل. نو په سلو درهمو ادا کاوه کې اصيل شو. او په سلو کې کفيل شو. يعنی سل درهم ئې په حق اصالت اداکړل. او سل درهم ئې بحق کفالت اداکړل. نودې به د خپل شريکوال نه هغه سل درهم واپس اخلی. کوم چې ده په حق د کفالی سره اداکړی دی. بيا دوهم شريك سل درهم شريك اول ته واپس ورکوی. او دا به وائی، چه تا سل درهمه زما د نائب کيدلو په حيثيت سره اداکړی دی. اود نائب اداکول د اصل اداکول وی. نو ستا ادا کاوه په حقيقت کې زما اداکول دی. گويا دوهم شريکوال سل درهم اداکړی دی. په دې کې به پنځوس بحق اصاله وی. او پنځوس به په حق د کفاله وی. نو دوهم شريك هغه پنځوس درهم کوم ئې چې بحق کفاله اداکړی دی. دا به د شريك اول نه واپس اخلی. بيا به شريك اول وائی، چه پنځوس درهم کوم چې تا زما د اړخه اداکړی دی. زما د نائب په حيثيت سره دې اداکړې دی. اود نائب اداکول د اصل اداکول دی. نو ستا اداکول په حقيقت کې زما اداکول دی. اوهرکله چې ما ادا کړی دی. نو په دې کې به نصف يعنی پنځويشت درهم به بحق اصاله وی. او نصف يعنی پنځويشت به بحق کفاله وی. نو هغه پنځويشت درهم کوم چې بحق کفاله اداکړی دی. هغه واپس کړه. بيا به دوهم شريك پنځويشت درهم واپس کاوه نه روسته هم دا تقرير کوی. او جزء لايتجزی چونکه باطل ده. په دې وجه به دا سلسله الی نهايه روانه وی. او تسلسل به لازميږی. او تسلسل باطل دې. نو نصف دين پورې خپل انډيوالان اړخ ته رجوع کول به هم باطل وی. اود نصف دين نه په زياتی کې چونکه تسلسل نه لازميږی. په دې وجه د نصف دين نه په زياتی کې رجوع کاوه کې هيڅ باك نشته.

**د يوکس دوې (دوه) کفيلان جوړيدل اودا دواړه د يوبل کفيل کيدل او د رجوع کولو حکم**

وَإِذَا كَفَلَ رَجُلَانِ عَنْ رَجُلٍ بِمَالٍ عَلَى أَنْ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ او که دوې (دوه) سړی د يو سړی د اړخه د مال کفيلان شو په دې شرط باندې چې په دې دواړو کې هريو د خپل انډيوالان د اړخه کفيل دې فَكُلُّ شَيْءٍ أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا نو څه چې په دې دواړو کې يوکس ادا کړی دی رَجَعَ عَلَى شَرِيكِهِ بِنِصْفِهِ د هغې نصف د خپل انډيوالان نه واپس اخستلې شی قَلِيلًا كَانَ أَوْ كَثِيرًا که دا لږ وی، اوکه ډير وی.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې، چه دوې (دوه) سړی د يو کس د اړخه په دې شرط د مال کفيلان شو، چه په دې دواړو کې به هريو د بل د اړخه هم کفيل وی. نو په دواړه کفيلانو کې چې يوکس څه اداکړی وی. هغه ته د خپل انډيوالان نه د نصف واپس اخستلو اجازت دې. که ادا کړې شوې رقم لږ وی. اوکه زيات وی. مثلاً حامد او خالد د شاهد دارخه د دوې (دوه) سوه درهمو په دې شرط باندې کفيلان شو. چه حامد به د خالد د اړخه او خالد به دحامد د اړخه هم کفيل وی. نوکه حامد مکفول له ته د شاهد د اړخه دوې (دوه) سوه درهم اداکړل. نو حامد ته به د خپل انډيوالان يعنی خالد نه ددې نصف يعنی سل درهم واپس اخستلو اختيار حاصل وی.



وَتَنْفُقُ الْمَسْأَلَةُ فِي الصَّحِيحِ اود صحيح قول مطابق د مسئلې معنی داده أَنْ تَكُونَ الْكَفَالَةُ بِالْكُلِّ عَنِ الْأَصِيلِ چې د کل مال کفاله د اصيل د اړخه هم ده وَبِالْكُلِّ عَنِ الشَّرِيكِ اود کل مال کفاله د شريك د اړخه هم ده وَالْمُطَالَبَةُ مُتَعَدِّدَةٌ او مطالبه متعدد ده. نو دوې (دوه) کفالې به جمع کيږی فَتَجْتَمِعُ الْكَفَالَتَانِ عَلَى مَا مَرَّ لکه ځنګه چې تير شوی وَمُوجِبُهَا الْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ اودکفالې موجب مطالبه لازمول دی فَتَصِحُّ الْكَفَالَةُ عَنِ الْكَفِيلِ نود کفيل د اړخه هم کفيل کيدل صحيح دی كَمَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ عَنِ الْأَصِيلِ لکه ځنګه چې د اصيل د اړخه کفيل کيدل صحيح دی وَكَمَا تَصِحُّ الْحَوَالَةُ مِنَ الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ اولکه ځنګه چې د محتال عليه د اړخه حواله کول صحيح دی.

حل اللغة: ① تجتمع-جمع کيږی-② متعددة-ګڼ-③ الشائع-خور\مشترکه-④ الاستواء-برابری

تشريح:- علامه مرغينانی ﷫ فرمائی، چه د صحيح قول مطابق ددې مسئلې مراد دادې، چه په دواړه کفيلانو کې هريو اصيل يعنی د مکفول عنه د اړخه هم د پوره مال کفيل دې. اود خپل انډيوالان د اړخه هم د پوره مال کفيل دې. او مطالبه متعدد ده. په دې طريقه چې دواړه کفيلانو کې هريو ددې مطالبې التزام کړې دې. کوم چې د مکفول له د اړخه په مکفول عنه يعنی مديون باندې وو. او د دوهم د هغه مطالبې التزام ئې کړې دې. کوم چې د کفالې په وجه کفيل باندې وو. نو په دواړه کفيلانو کې هر يو باندې دوې (دوه) دوې (دوه) کفالې جمع کيږی. ① کفاله عن الاصيل ② کفاله عن الکفيل......او موجب د کفالې چونکه د مطالبې التزام دې. او په کفيل باندې هم مکفول له لپاره مطالبه کيږی. په دې وجه د کفيل د اړخه کفيل کيدل، هم دغه ډول صحيح دی. لکه ځنګه چې د اصيل (مديون) د اړخه کفيل کيدل صحيح دی. اولکه ځنګه چې محتال عليه کوم شی خپل ځان باندې لازم کړې وو. د هغې په بل باندې حواله کول صحيح دی. دغه ډول د کفيل دارخه کفيل کيدل هم صحيح دی.

وَإِذَا عُرِفَ هَذَا او هرکله چې دا معلومه شوه فَمَا أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا نو په دې دواړو کې چې يوکس څه اداکړل وَقَعَ شَائِعًا عَنْهُمَا هغه به ددې دواړو نه مشترك طور باندې واقع کيږی إِذِ الْكُلُّ كَفَالَةٌ ځکه چې ،،کُل په کُل،، (پوره په پوره) کفاله ده فَلَا تَرْجِيحَ لِلْبَعْضِ عَلَى الْبَعْضِ نو بعض ته به په بعض باندې ترجيح نه وی.

تشريح:- بهرحال هرکله چې دا معلومه شوه، چه په دواړه کفيلانو کې هريو د اصيل يعنی د مديون د اړخه هم د پوره مال کفيل دې. اود خپل انډيوالان يعنی د دوهم کفيل د اړخه هم د پوره مال کفيل دې. نو په دې دواړو کفيلانو کې چې يوکفيل څه ادا کوی. دا به په مشترك طور باندې د دواړو د اړخه ادا کيږی. مثلاً يو کفيل مکفول له ته دوې (دوه) سوه درهم اداکړل. نودا دوې (دوه) سوه درهم به د دواړه کفيلانو د اړخه ادا وی. يعنی دا به ونيلې شی، چه دې کفيل سل درهم د کفاله عن الاصيل په وجه ادا کړی دی. او سل درهم ئې د کفاله عن الکفيل په وجه اداکړی دی. او دليل دادې، چه دلته کې واړه په تولـه کفاله ده. يعنی د کفاله عن الاصيل په وجه چې کوم واجب دی. هغه هم بحق کفاله واجب دی. اود کفاله عنه الکفيل په وجه چې کوم واجب دی. هغه هم بحق کفاله واجب دی.

بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه چې تير شو. فَيَرْجِعُ عَلَى شَرِيكِهِ بِنِصْفِهِ نودې د خپل شريك نه نصف واپس اخستې شی وَلَا يُؤَدِّي إِلَى الدَّوْرِ اود دَور سبب به هم نه وی لِأَنَّ قَضِيَّتَهُ الْاِسْتِوَاءُ ځکه چې ددې مقتضی برابر دې وَقَدْ حَصَلَ بِرُجُوعِ أَحَدِهِمَا بِنِصْفِ مَا أَدَّى او برابری په دې دواړو کې د يو کس نصف ادا کاوه سره په رجوع کاوه سره حاصل شوه فَلَا يَنْتَقِضُ بِرُجُوعِ الْآخَرِ عَلَيْهِ نو په ده به د دوهم په رجوع کاوه سره برابری نشی ماتولې.

تشريح:- ددې په خلاف رومبئ مسئله ده، چه په هغې کې د نصف وجوب بحق اصالت دې. اود نصف وجوب بحق کفالت دی. بهرحال په دې مسئله کې هرکله چې د دواړو وجوب بحق کفاله دې. نويو ته به په دوهم باندې ترجيح نه وی. او هرکله چې يو ته په دوهم باندې ترجيح نشته. نو ادا شوې مال يعنی دوې (دوه) سوه درهم به د دواړه کفيلانو د اړخه ادا وی. يعنی نصف مال به د کفاله عن الاصل په وجه پخپله دده د اړخه ادا وی. او نصف مال به د کفاله عن الکفيل په وجه دده د انډيوالان يعنی د دوهم کفيل د اړخه ادا وی. اوهرکله چې ادا کړې شوې مال د دواړو د اړخه اداشو. يعنی نصف دده د انډيوالان يعنی د دوهم کفيل د اړخه ادا شو. نو ده ته به د خپل انډيوالان نه د

نصف یعنی د سل درهمو واپس اخستلو اختیار وی.او په دې کې به دورهم نه لازمیږی.ځکه چې په دواړوکې هر یو
د مدیون د اړخه د پوره مال کفیل کیدل،او په دواړوکې د هر یو خپل اندیوالان د اړخه د پوره مال کفیل
کیدل،ددې خبرې تقاضا کوی چه د دواړو حالت برابر وی.اوهر کله چې یو کس د دوې (دوه) سوه درهمو ادا کاوه نه
روسته خپل اندیوالان نه نصف یعنی سل درهم واپس واخستل.نو برابری او مساوات حاصل شو.اوس هغه کس نه
د کوم نه چې سل درهم واپس اخستلې شوی دی.د شریك اول نه د سلو درهمو نصف د واپس اخستلو اختیار
ورکړې شی.نو مساوات به پاتې نشی.ځکه چې په دې صورت کې د یو د اړخه یوسل پنځوس درهمه ادا شی اود
دوهم د اړخه به صرف پنځوس درهم ادا شی.نود مساوات او برابری قائم ساتلو لپاره به دوهم کفیل (د کوم نه چې
سل درهم واپس اخستلې شوی دی) ته د رجوع کاوه اختیار نه وی.اوهر کله چې ده ته د رجوع کاوه اختیار نشته نو
دور یعنی په رجوع کاوه کې به تسلسل هم نه لازمیږی.

بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه چې تیر شو.

تشریح:- په خلاف د رومبې مسئلې،ځکه چې په رومبی مسئله کې د پوره مال التزام بحکم کفاله نه دې کړې بلکه د
نصف التزام ئې د شراء وغیره په وجه بالاصالت کړې دې.اود نصف التزام ئې بحکم کفالت کړې دې.نو په دې
مسئله کې که ادا کړې شوې نصف رقم بحکم کفاله اوګرځولې شی او اندیوالان اړخه ته د رجوع کاوه اختیار ورکړې
شی.نو په رجوع کولو کې به تسلسل لازم شی.لکه ځنګه چې ددې تفصیل د تیرې شوې مسئلې د دوهم دلیل لاندې
تیر شوی دی.

ثُمَّ يَرْجِعَانِ عَلَى الْأَصِيلِ بیا دا دواړه کفیل د خپل اصیل نه واپس اخستې شی لِأَنَّهُمَا أَدَّيَا عَنْهُ أَحَدُهُمَا بِنَفْسِهِ ځکه چې
یو د اصیل د اړخه پخپله اداکړی دی وَالْآخَرُ بِنَائِبِهِ او دوهم د خپل نائب په ذریعه اداکړی دی.

تشریح:- بیا دواړه کفیلان ادا شوې مال د خپل اصیل یعنی مکفول عنه نه واپس اخستلې شی.ځکه چې د مکفول
عنه د اړخه اداکوونکی دواړه کفیلان دی په دې طریقه چې یو پخپله ادا کړې دې او دوهم کفیل د خپل نائب په
ذریعه ادا کړې دې اود نائب اداکول چونکه داسې دی لکه پخپله ئې چې اداکړې وی په دې وجه ګویا هر یو پخپله
د مکفول عنه د اړخه ادا کړې دې.اوهر کله چې دواړه کفیلانو د مکفول عنه د اړخه اداکړې دې.نو دواړو ته به
مکفول عنه اړخ ته د رجوع کاوه اختیار حاصل وی.

وَإِنْ شَاءَ او که غواړی رَجَعَ بِالْجَمِيعِ عَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ ادا شوې پوره مال دې د مکفول عنه نه واپس واخلی لِأَنَّهُ كَفَلَ
بِجَمِيعِ الْمَالِ عَنْهُ بِأَمْرِهِ ځکه چې دې د مکفول عنه د اړخه دهغه په حکم سره د پوره مال کفیل شوې دې.

تشریح:- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی چه کوم کفیل مکفول له ته دوې (دوه) سوه درهم اداکړی دی.هغه ته چې
لکه ځنګه دا اختیار دې چه دې نصف (سل درهم) د خپل اندیوالان یعنی د دوهم کفیل نه واپس واخلی دغه ډول
دا اختیار هم شته چه دې پوره مال یعنی دوې (دوه) سوه درهم د مکفول عنه نه واپس واخلی.ځکه چې دې د
مکفول عنه د اړخه هم دهغه په حکم سره د پوره مال کفیل دې.نو څه ئې چې اداکړی دی هغه واړه د مکفول عنه نه
واپس اخستلې شی.لنډیز دا شو چه په داسې دوې (دوه) کفیلانو کې که یو کفیل مال اداکړو نو ده ته اختیار
دې که غواړی د مکفول عنه نه دې پوره مال واپس واخلی اوکه غواړی.د کفیل نه دې د ادا شوی نصف واپس
واخلی اوبیا دې دواړه په شریکه د مکفول عنه نه واپس واخلی

په دوې (دوه) کفیلانو کښې د یو کفیل بری کولو سره د دوهم کفیل نه د وصولولو حکم

قَالَ وَإِذَا أَبْرَأَ رَبُّ الْمَالِ أَحَدَهُمَا او که رب المال په دوې (دوه) کفیلانو کې یو بری کړو أَخَذَ الْآخَرَ بِالْجَمِيعِ نو د دوهم نه
پوره مال اخستې شی لِأَنَّ إِبْرَاءَ الْكَفِيلِ لَا يُوجِبُ بَرَاءَةَ الْأَصِيلِ ځکه چې د کفیل بری کیدل اصیل بری کول نه واجبوی
فَبَقِيَ الْمَالُ كُلُّهُ عَلَى الْأَصِيلِ نو په اصیل باندې پوره مال پاتې دې وَالْآخَرُ كَفِيلٌ عَنْهُ بِكُلِّهِ او دوهم ده د اړخه د



پوره مال کفیل دې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه ځنګه چې موږ بیان کړی دی وَلِهٰذَا يَأْخُذُهُ بِهِ . په دې وجه مکفول له کفیل په پوره
مال کې ګرفتارولې شی.

حل اللغة: ① یوجب-واجبوی-② یاخذ-اخلی-③ جمیع-ټول-④ الدیون-جمع د دین،قرض

تشریح:- د مسئلې د پیل نه وړاندې زده کړه دا خبره چې مفاوضه داسې تجارت ته وائی،چه په دې کې دوې (دوه)
سړی شریك وی.او دواړه د مال، آزادئ ، عقل او دین په اعتبار سره مساوی او برابر وی.شرکت مفاوضه وکالت او
کفالت دواړو ته متضمن وی.یعنی په دواړه شریکانوکې هریو د دوهم د اړخه وکیل هم وی.او کفیل هم
وی.مفاوضه د تفویض نه مشتق دې.اود تفویض معنی د سپارلو ده.او په دواړه شریکانوکې هریو چونکه تصرف
خپل اندیوالان ته سپاری.په دې وجه ددې نوم مفاوضه کیخودې شو.

### د شرکت مفاوضه تعارف

قَالَ وَإِذَا افْتَرَقَ الْمُتَفَاوِضَانِ نو قرضخواهانو ته اختیار دې فَلِأَصْحَابِ الدُّيُونِ أَنْ يَأْخُذُوا أَيَّهُمَا شَاءُوا بِجَمِيعِ الدَّيْنِ چې په دې
دواړوکې دکوم کس نه غواړی.پوره قرضه وصول کړی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ ځکه چې په
متفاوضینوکې هریو د خپل اندیوالان د اړخه کفیل دې عَلَى مَا عُرِفَ فِي الشَّرِكَةِ لکه ځنګه چې په کتاب الشرکة
کې معلوم شو.

( د شرکت مفاوضه ختمول اود پور وصولولو مسئله ) صورت د مسئلې دادې.که متفاوضینو شرکت مفاوضه
ختم کړلو.او په دوی باندې د خلګو قرضه وی.نو قرضخواهانو ته اختیار دې،چه دوی خپله پوره قرضه په دوی
دواړوکې دچا نه غواړی.وصول کړی.ځکه چې په دې دواړوکې هر یو د عقدمفاوضه په وجه د خپل شریك د اړخه
وکیل دې.نو په دې دواړوکې هر یو باندې به نصف قرضه بحق اصالت واجب وی.او نصف قرضه به بحق کفالت
واجب وی.

وَلَا يَرْجِعُ أَحَدُهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ او په دوی دواړوکې به یو کس پخپل اندیوالان باندې رجوع نه کوی حَتّٰى يُؤَدِّيَ أَكْثَرَ مِنَ
النِّصْفِ تردې چې د نصف نه زیات اداکړی لِمَا مَرَّ مِنَ الْوَجْهَيْنِ فِي كَفَالَةِ الرَّجُلَيْنِ .دهغه دلیلونو په وجه کوم چې په
کفالة الرجلین کې تیر شوی دی.

حل اللغة: ① یودی-ورکوی-② اکثر-زیات-③ النصف-نیم-④ وجهین-تثنیه د وجه،دلیل

تشریح:- بهرحال په هریو باندې پوره قرضه لازم ده.اوهر کله چې په هر یو باندې پوره قرضه لازم ده.نود هریو نه پوره
قرضه وصولولې شی.خوکه قرضخواهانو په دوی دواړوکې د یو نه مطالبه اوکړله.او قرضه ئې وصول کړله.نوده ته
به د خپل اندیوالان نه د واپس اخستلو اختیار هغه وخت وی.کله چې د نصف پور نه زیاتی اداکړی.د نصف پور
ادا کاوه په صورت کې به خپل اندیوالان اړخ ته قطعاً رجوع نه کوی.اود نصف نه د زیات ادا کاوه په صورت کې
صرف زیاتی مقدار واپس اخستلې شی.په دې باندې د کفالة الرجلین په رومبی مسئله کې دوې (دوه) دلیلونه
تیرشوی دی.هلته کې اوګورئ.

دوې (دوه) غلامان په یو بدل کتابت سره مکاتب کول اود یو بل د اړخه خپل مولا لپاره کفیل جوړیدل

قَالَ وَإِذَا كُوتِبَ الْعَبْدَانِ كِتَابَةً وَاحِدَةً اوکه دوې (دوه) غلامان د کتابت واحده لاندې مکاتب شو وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا
كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ او په دوی کې هریو غلام د بل اړخه کفیل شوې دې فَكُلُّ شَيْءٍ أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا نو په دوی دواړوکې چې
یوکس څه اداکړی رَجَعَ عَلَى صَاحِبِهِ بِنِصْفِهِ هغه ددې د نصف خپل اندیوالان اړخ ته رجوع کولې شی.

حل اللغة: ① کوتب-کتابت اوشی-② العتق-ازادی-③ تحقق-ثابت شو-④ نصف-نیم

تشریح:- صورت د مسئلې دادې،که مولا خپل دوې (دوه) غلامان په یو عقد کتابت کې مکاتب کړل.مثلاً دا ئې
اووئیل چه ما تاسو دواړه د یو کال په میعاد باندې د زر درهمو په عوض مکاتب کړئ.او په دواړه غلامانو کې
هریو د خپل اندیوالان د اړخه خپل مولا لپاره کفیل شو.نودا ځموږ په نیز استحساناً جائز دی.او قیاساً جائز نه

دی.او د امام مالك، امام شافعي او د امام احمد ﷺ قول د قیاس مطابق دی. اوکه مولا دواړه غلامان جلا جلا مکاتب کړل.او په دواړوکې هریو د خپل اندیوالان دوهم غلام دارخه کفیل شو.دااستحساناً ناجائز دی.

وَوَجْهُهٗ او ددې وجه داده أَنَّ هٰذَا الْعَقْدَ جَائِزٌ اِسْتِحْسَانًا چې داسې عقد کفاله استحساناً جائز ده وَطَرِيقُهٗ اَنْ يُّجْعَلَ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا اَصِيلًا فِيْ حَقِّ وُجُوْبِ الْاَلْفِ عَلَيْهِ او د جواز طریقه داده.چه په دوی کې هریوکس هغه ته د یو زر واجبیدلو په حق کې اصیل ګرځولې شی فَيَكُوْنُ عِتْقُهُمَا مُعَلَّقًا بِاَدَائِهٖ نو ددې دواړو آزادیدل به په یو زرادا کاوه باندې معلق وی وَيُجْعَلُ كَفِيْلًا بِالْاَلْفِ فِيْ حَقِّ صَاحِبِهٖ او هر یو به دده د اندیوالان په حق کې کفیل ګنړلې شی وَسَنَذْكُرُهٗ فِي الْمُكَاتَبِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى اودا به موږ انشاء الله په کتاب المکاتب کې ذکر کړو

تشریح:- وجه د استحسان داده.چه د کفاله ددې صورت صحیح کاوه لپاره به دا ونیلې شی.چه په دواړه غلامانوکې په هر یوباندې د یو زر درهمو وجوب اصالة دې.کفالة نه دې.او د دواړو آزادی د یو زر په ادا کاوه باندې معلق ده.ګویا مولا په دواړو غلامانوکې هریو ته دا اوونیل.که تا یو زر درهم ادا کړل.نو تاسو دواړه آزاد یئ.نو په دواړوکې چې کوم یو هم یو زر درهم اداکړی.دده په ادا کاوه سره به دواړه غلامان آزادیږی.او مولا به په دواړو غلامانوکې د هر یو نه د جمیع مال یعنی د یو زر درهمو مطالبه بحکم اصالة کوی.بحکم کفالت به نه کوی. لنډیز داچه دا یو زر درهم بدل کتابت نه دې.بلکه دا په یو زر ادا کاوه باندې آزادی معلق کول دی.او په مال ادا کاوه باندې آزادی معلق کول او د مکاتب کاوه په منځ کې توپیر دې.لکه څنګه چې په ،، باب العتق علی جعل ج۲،، کې دا بحث تیرشوې دې.او زیاتی تفصیل به په کتاب المکاتب کې بیانوو.نو هرکله چې په دواړوکې توپیر دې.نود یو زر په ادا کاوه باندې د آزادئ معلق کاوه په صورت کې به دواړو غلامانو ته مکاتب نشی ونیلې.او دې یو زر ته به بدل کتابت نه وانی.ددې نه روسته هرکله چې په دواړو غلامانوکې هریو دده د اندیوالان په حق کې د یو زر کفیل ګرځولې شی.نونه به د مکاتب کفیل کیدل لازمیږی.اونه به د بدل کتابت کفاله لازمیږی.حالانکه په ذکرشوې مسئله کې هم ددې دوې (دوه) خبرو په وجه کفالې ته باطل او ناجائز ونیلې شوی وو.نو هرکله چې دا دواړه خبرې لازم نشوې.نو کفاله به هم تیک وی.دا خیال ساتل پکار دی.چه صرف ددې مسئلې د صحیح کیدلو لپاره د ضرورة په وجه دواړه غلامانوکې په هریو باندې پوره مال واجب کړې شوې دې.ګنې حقیقت دادې.چه زردرهم د دواړو د آزادئ بدل دې.یو زر درهم به په دواړو باندې تقسیمولې شی.او پنځه پنځه سوه درهم به واجب وی.ددې مسئلې نه علاوه په نورو ځایونوکې به د حقیقت اعتبار کولې شی.

وَاِذَا عُرِفَ ذٰلِكَ اوهرکله چې دا معلومه شوه. فَمَا اَدَّاهُ اَحَدُهُمَا رَجَعَ بِنِصْفِهٖ عَلٰى صَاحِبِهٖ نو په دوی کې چې یوکس څه اداکړل.د هغې نصف به د خپل اندیوالان نه واپس اخلی. لِاسْتِوَائِهِمَا خکه چې دواړه مساوی دی. وَلَوْ رَجَعَ بِالْكُلِّ اوکه اداکړې شوې مال پوره واپس واخلی لَا تَتَحَقَّقُ الْمُسَاوَاةُ نو مساوات به نه متحقق کیږی.

تشریح:- بهرحال هرکله چې دا تفصیل معلوم شو.نو په دواړه غلامانوکې یو غلام چې څومره رقم هم اداکوی.که لږ وی اوکه ډیر وی.ددې د نصف به د خپل اندیوالان نه د اخستلو اختیار وی.خکه چې دواړه غلامان په کتابت کې برابر دی.په دې طریقه چې کُل بدل دواړو کې په هریو باندې پوره پوره واجب دې.او په دواړوکې هر یو د دوهم د پوره مال کفیل هم دې.نو ددې مساوات او برابری ثابتولو لپاره ضروری ده.چه په دواړوکې یوکس څومره هم اداکړو.ددې نصف به د خپل اندیوالان نه واپس اخلی.خکه که اداشوې پوره مال واپس اخلی.نومساوات به نه متحقق کیږی.اوکه بالکل واپس وانخلی.نوبیا به هم مساوات نه متحقق کیږی.

سوال: دلته کې یو سوال کیدلې شی.هغه داچه ذکرشوې یو زر درهم په حقیقت کې د دواړو غلامانو د آزادئ عوض دې.نو په دواړو به نصف نصف واجب وی.اوهرکله چې په دواړو باندې نصف نصف واجب دې.نو ادا کونکی ته نصف پورې د رجوع کاوه اختیار پکار نه دې.خکه چې نصف خو پخپله په ده واجب دې.البته د نصف نه د زیاتی رقم اداکولو په صورت کې زیاتی مقدار واپس اخستلې شی؟



خواب: ددې خواب دادې.که ادا کونکی ته د نصف پورې د رجوع کاوه اختیار ورنکړې شی.نو په مولا به صفقه متفرق شی.په دې طریقه چې ادا شوې نصف رقم یعنی پنځه سوه درهم که په خاص طور باندې د اداکونکی د ارخه واقع وی.نودې به د خپلې برخې (حصې) نه بری شی.او مکاتب چې کله د خپلې برخې (حصې) د دین نه بری شی نو دې آزادیږی.نو دې به هم د یو زر درهم بدل کتابت په نصف ادا کاوه سره آزادیږی.او دده اندیوال به پخپل حال باندې مکاتب پاتې وی.حالانکه مولا په دې دواړو باندې دا شرط کړې وو.چه دواړه ئې په یوځائې اداکړی.او یوځائې آزاد شی.نود صفقه د تفریق نه د بچ کیدلو لپاره دا درخواست اوکړې شو.چه په دواړوکې یوڅه اداکړی.د هغې نصف به د خپل اندیوالان نه اخلی.چه ادا کول هم یو شان د دواړو د ارخه وی. او دواړه یو ځائې آزاد شی.

### د دواړه مکاتبانو د نه اداکولو په صورت کښې د یو مکاتب آزادول

قَالَ وَلَوْ لَمْ يُؤَدِّيَا شَيْئًا حَتّٰى اَعْتَقَ الْمَوْلٰى اَحَدَهُمَا اوکه دواړو هیڅ ادانکړل.تردې چې مولا په دې دواړوکې یو آزادکړو جَازَ الْعِتْقُ نو آزادول جائز دی لِمُصَادَفَتِهٖ مِلْكَهٗ وَبَرِئَ عَنِ النِّصْفِ خکه چې آزادئ د مولا ملك موندلې دې.او دې د نصف مال کتابت نه بری شوې دې لِاَنَّهٗ مَا رَضِيَ بِالْتِزَامِ الْمَالِ خکه هغه غلام کوم چې آزادکړې شوې دې.په مال لازمولو باندې نه دې راضی شوې. اِلَّا لِيَكُوْنَ الْمَالُ وَسِيْلَةً اِلَى الْعِتْقِ وَمَا بَقِيَ وَسِيْلَةً مګر په دې وجه چې مال د آزادولو وسیله وی.او مال چونکه وسیله پاتې نشوه فَيَسْقُطُ خکه به مال ساقطیږی.

حل اللغة: الوسیلة-ذریعه-المصادفة-مخکی کیدل-العتق-ازادی-یسقط-ساقطیږی

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که دوې (دوه) غلامان په یو کتابت سره مکاتب کړې شو.او په دواړوکې هریو د خپل اندیوالان د ارخه کفیل شو.خو تر اوسه پورې دواړوکې چاهم څه ادا نکړل.تردې چې مولا یو آزاد کړو. نودا آزادول جائز دی.خکه چې مولا غلام په داسې حال کې آزاد کړې دې.چه هغه دده مملوك دې.خکه چې په مکاتب باندې ترکومه پورې د بدل کتابت څه برخه پاتې وی.نو دې د مولا مملوك وی.اودلته کې دا فرض کړې شوی دی.چه تراوسه پورې ئې هیڅ نه دی اداکړی.نوهرکله چې مکاتب د بدل کتابت څه برخه ادا نکړله.نو دې به مملوك وی.او مملوك آزادول جائز دی.په دې وجه دده آزادول به هم جائز او نافذ وی. او هرکله چې دا مکاتب آزاد شو.نود نیم بدل کتابت څخه به بری شی.خکه چې ده پخپل ځان باندې مال خکه لازم کړې وو. چې دا مال د آزادولو وسیله او ذریعه وی.خو چونکه آزادی په بله طریقه حاصل شوې ده.په دې وجه مال د آزادئ وسیله کیدل پاتې نشو.او هرکله چې د مال وسیله کیدل پاتې نشو.نود بدل کتابت نه نصف ساقط شو.

وَيَبْقَى النِّصْفُ عَلَى الْآخَرِ او په دوهم به نصف پاتې وی لِاَنَّ الْمَالَ فِي الْحَقِيْقَةِ مُقَابَلٌ بِرَقَبَتِهِمَا. خکه چې مال په حقیقت کې د دوې (دوه) غلامانو مقابل دې وَاِنَّمَا جُعِلَ عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا او په دوی کې په هریو باندې خکه مقررکړې شوې وو اِحْتِيَالًا لِتَصْحِيْحِ الضَّمَانِ چې د کفاله صحیح کیدلو حیله شی وَاِذَا جَاءَ الْعِتْقُ اسْتَغْنٰى عَنْهُ اوهرکله چې آزادی راغله.نود حیلې نه استغناء اوشوه فَاعْتُبِرَ مُقَابَلًا بِرَقَبَتِهِمَا نو ذکرشوې مال د دواړو غلامانو مقابل شمارکړې شو. فَلِهٰذَا يَتَنَصَّفُ اوهم په دې وجه دا نیم نیم کړې شو.

حل اللغة: ① الاحتیال-حیله\چل-② استغنی-بې پرواه شو-③ یتنصف-نیمیږی-④ تصحیح-صحیح کول

تشریح:- او یو نصف په دوهم مکاتب باندې پاتې شو.خکه چې مال په حقیقت کې د دواړو مکاتبو د آزادئ عوض دې.او په تیره شوې مسئله کې هر یو باندې پوره پوره بدل کتابت واجبول د کفاله صحیح کاوه لپاره صرف یوه حیله وه.خوکله چې یو مکاتب آزاد شو.نو ددې حیلې هیڅ ارتیا پاتې نشو. او دا مال کتابت د دواړو مکاتبو د آزادئ مقابل اوګرځولې شو.او آزاد شوې مکاتب د نصف بدل کتابت نه بری کړې شو.او په دوهم مکاتب باندې نصف بدل کتابت پاتې کړې شو.

وَلِلْمَوْلٰى اَنْ يَّاْخُذَ بِحِصَّةِ الَّذِيْ لَمْ يُعْتِقْ اَيَّهُمَا شَاءَ او مولا ته اختیار دې.چه د هغه غلام برخه کوم چې نه دې آزادکړې شوې.په دواړوکې د کوم نه غواړی.واخلی الْمُعْتَقَ بِالْكَفَالَةِ د آزاد شوی نه دکفاله په وجه وَصَاحِبَهٗ بِالْاَصَالَةِ او دده د

انډيوالان نه د اصالت په وجه **وَإِنْ أَخَذَ الَّذِي أَعْتَقَ** نو كه مولا دهغه ( غلام) نه واخستلو. كوم چې آزاد كړې شوې دي **رَجَعَ عَلَى صَاحِبِهِ بِمَا يُؤَدِّي** نو دي به د خپل انډيوالان نه هغه څه واپس اخلي. كوم نې چې اداكړې دى **لِأَنَّهُ مُؤَدٍّ عَنْهُ** ځكه چې دې د هغه د اړخه د هغه په حكم سره اداكونكې دي **بِأَمْرِهِ وَإِنْ أَخَذَ الْآخَرَ** اوكه د دوهم نه واخستلو **لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الْمُعْتَقِ بِشَيْءٍ** نو دي د آزاد شوى نه هيڅ نشى اخستلې **لِأَنَّهُ أَدَّى عَنْ نَفْسِهِ** ځكه چې ده د خپل ذات د اړخه اداكړې دي.

**حل اللغة:** ① مولى-مالك-② المعتق-ازادونكې-③ الاخذ-اخستل-④ ادى-ادا كړو

**تشريح:**- او ددې نصف بدل كتابت په اړه كې مولا ته اختيار دې. چه دې ددې مطالبه د آزاد شوى مكاتب نه اوكړى. ياد غيرآزاد شوى مكاتب نه ئې اوكړى. د آزاد شوى مكاتب نه د مطالبې حق به د كفاله په وجه وى. او د دوهم ځخه به د مطالبې حق ځكه وى. چه په ده باندې اصلاً واجب دې. اوس كه آزاد شوى مكاتب ادا كړو. نو دې به ئې د خپل انډيوالان نه واپس اخلي. ځكه چې ده دده په حكم سره ادا كړې دي. او كفيل چې كله د مكفول عنه حكم سره اداكوى. نو كفيل ته د مكفول عنه اړخ ته د رجوع كاوه اختيار وى. او كه پخپله غيرآزاد شوى مكاتب ادا كړې وى. نو ده ته به د آزاد شوى نه د واپس اخستلو اختيار نه وى. ځكه چې ده څه هم اداكړل. د خپل اړخه ئې ادا كړې دى. او د خپل اړخه اداكونكى ته د رجوع اختيار نه وى. نو ده ته به هم د رجوع اختيار نه وى.

**اشكال:** دلته يو اشكال دې. هغه داچه مولا كله د آزاد شوى مكاتب نه مطالبه كوى. نو دده د كفيل كيدلو په وجه مطالبه كولې شى. ددې نه معلومه شوه. چه د بدل كتابت كفاله صحيح ده. حالانكه د بدل كتابت كفاله باطل ده؟

**ځواب:** دادې. چه په مخكنۍ مسئله كې تيرشوى دى. چه په دې دواړوكې په هريو باندې د پوره مال مطالبه واجب وه. خو كله چې نصف ساقط شو. او نصف پاتې شو. نودا به په هغه صفت باندې پاتې وى. په كوم چې ثابت وو. ځكه چې بقاء د ثبوت موافق وى. او وړاندې تير شوى دى. چه دا مال بدل كتابت نه دې. بلكه ددې په ادا كاوه باندې آزادى معلق كړې شوې ده. اوهر كله چې دا مال بدل كتابت نه دې. نو ددې كفاله به هم صحيح وى.

## باب كفالة العبد وعنه

ژباړه ( دا) باب د غلام كفيل كيدلو، او دده د اړخه ( د كفيل كيدلو په بيان كې ) دې.

**تشريح:**- چونكه په بنيادمو كې حريت اصل دې. او آزادى اشرف ده. په دې وجه د آزاد سره متعلق د كفالې احكام مخكې بيان كړې شو. اود غلام سره متعلق د كفاله احكام روستو ذكر كړې شو.

**د غلام د اړخه كفيل جوړيدل اود غلام نه ددې د وصولولو حكم**

**وَمَنْ ضَمِنَ عَنْ عَبْدٍ مَالًا** اوكه يوكس د يو غلام د اړخه دداسې مال كفيل شو **لَا يَجِبُ عَلَيْهِ** كوم چې په ده باندې واجب الاداء نه دې **حَتَّى يَعْتِقَ** تردې چې آزاد كړې شى **وَلَمْ يُسَمِّ حَالًّا وَلَا غَيْرَهُ** اود حال يا غيرحال ذكر ئې اونكړو **فَهُوَ حَالٌّ** نودا كفاله حالى ده.

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې. چه يو سړې د غلام د اړخه د داسې مال كفيل شو. كوم مال چې په غلام باندې فى الحال واجب شوې دې. خودا به دده نه دده د آزادئ نه روسته اخستلې شى. او په كفاله كې ددې هيڅ ذكر اونكړې شوه. چه د كفيل ځخه به فى الحال مطالبه كولې شى. اوكه فى الحال به مطالبه نشى كولې. نود كفيل ځخه به فى الحال مطالبه كولې شى. مثلاً غلام د مولا د اجازت نه بغير نكاح اوكړله. په دې خيال چې نكاح صحيح شوه. حالانكه نكاح جائز نه وه. او شبهة ئې دې ښځې سره وطى اوكړله. نو مال وطى يعنى عقر(تاوان) به په غلام باندې فى الحال واجب وى. خو فى الحال به دده نه مطالبه نشى كولې. بلكه د آزاديدلو نه روسته به مطالبه كولې شى.



**لِأَنَّ الْمَالَ حَالٌّ عَلَيْهِ** ځكه چې په غلام باندې مال فى الحال واجب دي **لِوُجُودِ السَّبَبِ** ځكه چې سبب هم موجود دي **وَقَبُولِ الذِّمَّةِ** او قبول د ذمې هم موجود دي.

**تشريح:**- په ذكرشوى صورت كې كفاله ځكه صحيح ده. چه كفيل د هغه مال كفيل شوې دې. كوم چې په اصيل يعنى غلام باندې مضمون دې. او كفيل ددې مال په ادا كاوه باندې قادر هم دې. اود اموال مضمونه مطالبه جائز ده. په دې شرط چې كفيل ددې په ادا كاوه باندې قادر وى. په دې وجه ددې مال كفاله جائز ده. اود كفيل نه فى الحال مطالبه كول ځكه جائز دى. چه په مكفول عنه يعنى غلام باندې د مال وجوب فى الحال دې. او په غلام باندې مال فى الحال ځكه واجب دې. چه د وجوب مال سبب يعنى د مولا د اجازت نه بغير نكاح كول او وطى كول وغيره موجود شوى دى. اود غلام ذمه هم د مال د قبوليت صلاحيت لرى. يعنى د غلام ذمه ددې قابل ده. چه په ده باندې مال ثابت كړې شى. او هيڅ ميعاد هم موجود نه دې. نو هر كله چې د مال د وجوب سبب هم موجود دې. او قبوليت ذمه هم موجود ده. او هيڅ اجل او ميعاد ذكر نكړې شو. نو په غلام باندې به دا مال فى الحال واجب وى.

**إِلَّا أَنَّهُ لَا يُطَالَبُ لِعُسْرَتِهِ** خودا چې د غلام ځخه به دده د فقيرئ په وجه مطالبه نشى كولې **إِذْ جَمِيعُ مَا فِي يَدِهِ مِلْكُ الْمَوْلَى** ځكه چې كوم څه د غلام په قبضه كې دى. واړه د هغه د مولا ملك دې **وَلَمْ يَرْضَ بِتَعَلُّقِهِ بِهِ فِي الْحَالِ** او مولا فى الحال غلام سره په قرضه متعلق كاوه باندې راضى شوې نه دې.

**حل اللغة:** العسرة-غريبى-جميع-ټول-مفلس-غريب-الدين-قرض

**تشريح:**- خود يو مانع يعنى د غلام د غريبئ په وجه به دده نه مطالبه نشى كولې. او غلام غريب ( فقير) ځكه دې. چه د غلام په قبضه كې څه هم دى. هغه واړه د مولا ملك دې. او مولا په دې خبره هم نه دې راضى شوې. چه دده ملك يعنى غلام سره فى الحال د چا قرضه متعلق وى. نو هر كله چې غلام غريب دې. او مولا دده سره قرضه وغيره متعلق كيدلو باندې هم نه دې راضى شوې. نود مولا د حق په وجه به دغلام نه فى الحال مطالبه مؤخر كولې شى.

**وَالْكَفِيلُ غَيْرُ مُعْسِرٍ** او كفيل فقير هم نه دې **فَصَارَ** نو داسې شوه **كَمَا إِذَا كَفَلَ عَنْ غَائِبٍ أَوْ مُفْلِسٍ** لكه چې د يو غائب يا مفلّس ( بتشديد اللام) د اړخه كفيل شو.

**تشريح:**- اوكفيل چونكه غريب نه دې. ځكه به دده په حق كې دا مانع هم موجود نه وى. او هر كله چې د كفيل په حق كې مانع موجود نه دې. نو دده ځخه به فى الحال مطالبه كول هم جائز وى. اودا مسئله داسې شوه. لكه د يو غائب د اړخه ځوك سړې كفيل شو. نو كفيل ځخه به في الحال مطالبه كولې شى. اګرچه د مكفول عنه دده د غائب كيدلو په وجه فى الحال وصولول متعذر دى. اودا د مفلّس ( بتشديد اللام) د اړخه د كفيل كيدلو پشان دى. مفلس هغه كس ته وائى. چه دده د مفلس ( غريبوالى) قاضى اعلان كړې وى. دداسې سړى نه هيڅ حقدار ته فى الحال د مطالبې اختيار نه وى. نو كه ددې مفلس د اړخه ځوك سړې كفيل شو. نود كفيل ځخه به في الحال مطالبه كولې شى. اګرچه د مكفول عنه يعنى مفلس نه فى الحال مطالبه نه كيږى. بلكه د افلاس (غربت) ختميدلو نه روسته به مطالبه كيږى. دغه ډول به د غلام نه دده د غريبئ اود مولا د حق په وجه فى الحال مطالبه نه كيږى. خود كفيل ځخه به فى الحال مطالبه كيږى.

**بِخِلَافِ الدَّيْنِ الْمُؤَجَّلِ** په خلاف د ميعادى پور **لِأَنَّهُ مُتَأَخِّرٌ بِمُؤَخِّرٍ** ځكه چې دا د مؤخر كونكى سبب سره مؤخر دې.

**تشريح:**- دا عبارت د يو سوال ځواب دې. سوال دادې. چه هر كله د غلام نه دده د آزادئ نه روسته د مال مطالبه كولې شى. نودا مال ميعادى قرضه ولې نشى شمارلې كيدلې. يعنى داسې دې اوونيلې شى. چه دا قرضه په غلام باندې فى الحال واجب الاداء نه ده. بلكه مؤجل او ميعادى ده. اوهر كله چې په غلام يعنى مكفول عنه باندې قرضه ميعادى ده. نود كفيل ځخه به هم د ميعاد پوره كيدلو نه روسته مطالبه كولې شى؟

**ځواب:** ددې ځواب دادې. چه په دين مؤجل كې دين د مكفول عنه نه دداسې امر په وجه مؤخر دې. كوم چې تاخير راجبوى. او هغه امر تاجيل دې. اوكفيل ددې التزام كړې دې. كوم چې په مكفول عنه باندې واجب دې. نو هر كله چې

په مکفول عنه باندې دين مؤجل دې.نو کفاله به هم دين مؤجل وي.او هر کله چې کفاله د دين مؤجل شوه.نود کفيل ځخه به مطالبه في الحال نه کيږي.بلکه د اجل او ميعاد نه روسته به د مطالبې حق وي.او پاتې شوه د متن مسئله.نو په دې کې في الحال په غلام باندې اداکول واجب وو.خود يو عذر يعنې دده د غريبۍ اود مولا د حق په وجه في الحال مطالبه اونکړې شوه.اود کفيل په حق کې دا عذر موجود نه دې.په دې وجه دده نه في الحال مطالبه کولو کې هيڅ باك نشته.

ثُمَّ إِذَا أَدَّى بيا کله چې کفيل (في الحال) اداکړو رَجَعَ عَلَى الْعَبْدِ بَعْدَ الْعِتْقِ نودې به د غلام آزاديدلونه واپس اخلي لِأَنَّ الطَّالِبَ لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ ځکه چې مکفول له هم دده نه نشي اخستلې إِلَّا بَعْدَ الْعِتْقِ فَكَذَا الْكَفِيلُ خود آزاديدلو نه روسته (نې اخستلې شي) نو دغه ډول کفيل هم، لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ ځکه چې په مطالبه کې کفيل د مکفول له قائم مقام دې.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه هر کله کفيل د غلام د اړخه مال اداکړو.نو کفيل ته به د غلام د آزادولو نه روسته دده د واپس اخستلو اختيار وي.ځکه چې مکفول له ته پخپله د غلام نه دده د آزادۍ نه روسته د مطالبې حق دې.نود مکفول له قائم مقام يعنې کفيل ته به هم د آزادۍ نه روسته د مطالبې حق وي.

### د غلام په مرګ سره دده د کفيل بنفسه بري کيدل

📖 وَمَنْ ادَّعَى عَلَى عَبْدٍ مَالًا اوکه يو کس په غلام باندې د مال دعوه اوکړله وَكَفَلَ لَهُ رَجُلٌ بِنَفْسِهِ اود مدعي لپاره يو کس کفيل بنفسه شو فَمَاتَ الْعَبْدُ بيا دا غلام مړشو بَرِئَ الْكَفِيلُ نوکفيل بري شو لِبَرَاءَةِ الْأَصِيلِ ځکه چې اصيل بري شوې دې.

تشريح:- مسئله داده.چه يوسړي په غلام باندې د مال دعوه اوکړله.او دوهم سړې د مدعي لپاره د غلام د اړخه کفيل بنفسه شو.يعنې د غلام حاضرولو ذمه دارې ئې قبول کړله.بيا غلام يعنې مکفول بنفسه مړشو.نو کفيل به بري وي.ځکه چې د مرګ په وجه اصيل (مکفول بنفسه) بري شوې دې.اود اصيل په براءت سره کفيل بري کيږي.

كَمَا إِذَا كَانَ الْمَكْفُولُ عَنْهُ بِنَفْسِهِ حُرًّا لکه مثلاً کله چې کفيل بالنفس څوك آزاد وي.

تشريح:- لکه مثلاً کفيل بنفسه آزاد وي.او بري شي.نودده په بري کاوه سره به کفيل بري کيږي.نوهم دغه ډول دلته کې هم د مکفول بنفسه غلام په بري کيدلو سره کفيل بري کيږي.حاصل داچه مکفول بفسه آزاد وي.او که غلام وي.کفاله بالنفس نه متفاوت کيږي.يعنې په دواړه صورتونوکې د مکفول بنفسه په مرګ سره پخپله اصل (مکفول بنفسه) بري کيږي ځکه به کفيل هم بري کيږي.

### د غلام د مرګ په صورت کښې دده د کفيل نه د قيمت اخستلو حکم

📖 قَالَ فَإِنِ ادَّعَى رَقَبَةَ الْعَبْدِ نوکه يو کس د غلام د رقبه دعوه اوکړله. فَكَفَلَ بِهِ رَجُلٌ ويو کس دده کفيل بنفسه شو فَمَاتَ الْعَبْدُ بيا غلام مړ شو فَأَقَامَ الْمُدَّعِي الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ كَانَ لَهُ بيا مدعي بينه پيش کړل.چه دا غلام زما وو. ضَمِنَ الْكَفِيلُ قِيمَتَهُ نو کفيل به دده د قيمت ضامن وي.

حل اللغة: ① الرقبة-ځنې مراد ملکيت دې-② البينة-ګواهان-③ تبقى-پاته کيږي-④ وجه-طريقه

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوسړې په يو قابض باندې دعوه اوکړله.چه کوم غلام ستا په قبضه کې دې.دا زما دې.او يو بل سړې دده غلام حاضرولو کفيل شو.بيا غلام مړ شو.او مدعي په کفيل باندې بينه پيش کړل.چه کوم غلام مړشوې دې هغه زما ملك وو.نوکفيل به دده د قيمت ضامن وي.

لِأَنَّ عَلَى الْمَوْلَى رَدَّهَا عَلَى وَجْهٍ ځکه چې په مولا (قابض) باندې دده غلام واپس کول په داسې طريقه باندې واجب دې يَخْلُفُهَا قِيمَتُهَا چې دهغه قيمت دهغه خليفه وي وَقَدْ الْتَزَمَ الْكَفِيلُ ذَلِكَ او کفيل هم دغه شان دده التزام کړې دې وَبَعْدَ الْمَوْتِ تَبْقَى الْقِيمَةُ وَاجِبَةً عَلَى الْأَصِيلِ اود غلام د مرګ نه روسته په اصيل باندې قيمت واجب پاتې کيږي فَكَذَا عَلَى الْكَفِيلِ نو هم دغه ډول به کفيل باندې پاته کيږي.



تشريح:- دليل دادې.چه کوم سړې په دې غلام باندې قابض دې.هغه باندې واجب دي.چه دې عين غلام مدعي ته واپس کړي.اوکه د غلام واپس کاوه نه عاجز وي.نو دده قيمت دې واپس کړي.نوهر کله چې د قيمت ضمان په اصيل يعنې قابض باندې واجب دې.نو په کفيل به هم واجب وي.ځکه چې کفيل پخپل ځان باندې د هغه شي مطالبه لازم کړې ده.د کوم شي مطالبه چې په اصيل يعنې قابض باندې ده.اود غلام د مرګ نه روسته اصيل يعنې په قابض باندې چونکه د غلام قيمت واجب دې.په دې وجه کفيل باندې به هم دده قيمت مطالبه واجب وي.

بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اولې (مسئلې).

تشريح:- دا دې په خلاف د رومبۍ مسئله يعنې «من ادعى على عبد...» ده.چه په هغې کې د ژوندې غلام حاضرولو کفالت شوې دې.خو کله چې د مرګ په وجه پخپله د غلام نه خپل ځان سپارل ساقط شو.نود کفيل ځخه به هم ساقطولې شي.

### د غلام يا مولا د يو بل کفيل کيدل اوپه يو بل د رجوع حکم

📖 قَالَ وَإِذَا كَفَلَ الْعَبْدُ عَنْ مَوْلَاهُ بِأَمْرِهِ اوکه غلام د خپل مولا د اړخه دده په حکم سره کفيل شو فَعَتَقَ بيا دې آزاد شو فَأَدَّاهُ بيا ده مال اداکړو أَوْ كَانَ الْمَوْلَى كَفَلَ عَنْهُ يا مولا د خپل غلام د اړخه کفيل شو فَأَدَّاهُ بَعْدَ الْعِتْقِ بيا د غلام آزاديدلو نه روسته مولا مال اداکړو لَمْ يَرْجِعْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ نو په دوې دواړوکې به هيڅ يو خپل اندېوالان ته رجوع نه کوي.

تشريح:- په دې عبارت کې دوې (دوه) مسئلې ذکر دي.يوه داچه غلام د خپل مولا د اړخه دده په حکم سره کفيل شو.نو ددې هم دوې (دوه) صورتونه دي.[1] يا خو به په ده دومره قرضه وي.چه دده د رقبه احاطه اوکړي.او[2] يا به په ده باندې قرضه نه وي.که په غلام باندې دين مستغرق وي.نود قرضخواهانو د حق په وجه به دده کفيل کيدل صحيح نه وي.اګرچه د مولا په اجازت سره وي.اوکه په غلام باندې دين مستغرق نه وي.نو دده کفيل کيدل جائز دي.په دې شرط چې د مولا په حکم سره وي.② داکه مولا د خپل غلام د اړخه کفيل شو.نودا جائز دي.که کفيل بالنفس جوړشوې وي.او که کفيل بالمال، غلام مديون وي.اوکه غيرمديون وي.نو هر کله چې په دواړه مسئلوکې کفاله ټيك شوه.او غلام د خپل آزاديدلو نه روسته هغه مال اداکړو.د کوم چې دې کفيل شوې وو.يا په دويمه مسئله کې مولا د خپل غلام آزاديدلو نه روسته مال مکفول به اداکړو.نو په رومبۍ مسئله کې غلام ته د خپل مولا نه او په دويمه مسئله کې مولا ته د خپل غلام نه د هيڅ شي واپس اخستلو اختيار نشته.

وَقَالَ زُفَرُ او امام زفر رحمه الله فرمايي يَرْجِعُ چې واپس اخستې شي وَمَعْنَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ أَنْ لَا يَكُونَ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ اود رومبې صورت معنې داده.چه په غلام باندې قرضه نه وي حَتَّى تَصِحَّ كَفَالَتُهُ بِالْمَالِ عَنِ الْمَوْلَى تردې چې دده به د مولا د اړخه کفاله بالمال صحيح وي إِذَا كَانَ بِأَمْرِهِ په دې شرط چې د مولا په حکم سره وي أَمَّا كَفَالَتُهُ عَنِ الْعَبْدِ پاتې شو د مولا د خپل غلام د اړخه کفيل کيدل فَتَصِحُّ عَلَى كُلِّ حَالٍ نو په هرحال کې صحيح دي.

تشريح:- امام زفر رحمه الله فرمائي.چه هريو ته د خپل مکفول عنه نه د رجوع کاوه اختيار دې.يعنې په رومبۍ مسئله کې غلام ته د مولا نه د رجوع اختيار شته.او په دويمه مسئله کې مولا ته د خپل غلام نه د رجوع اختيار شته دې.

علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د رومبۍ مسئلې مراد دادې.چه په غلام باندې قرضه نه وي.هم دا خادم (مصنف اشرف الهدايه) د رومبۍ مسئلې دوهم صورت جوړکړې دې.او پيش کړې ئې دې.يعنې د غلام د خپل د مولا د اړخه دده په حکم سره کفيل بالمال کيدل هغه وخت صحيح دي.کله چې په غلام باندې د هيڅ چا قرضه نه وي.او پاتې شو د مولا د غلام د اړخه کفل کيدل،نودا بهرصورت صحيح دي.که کفاله بالمال وي.اوکه کفاله بالنفس وي.په غلام قرضه وي.اوکه قرضه نه وي.

لَهُ د امام زفر رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ تَحَقَّقَ الْمُوجِبُ لِلرُّجُوعِ وَهُوَ الْكَفَالَةُ بِأَمْرِهِ چې موجب للرجوع يعنى كفاله اوموندې شوه وَالْمَانِعُ وَهُوَ الرِّقُّ قَدْ زَالَ او مانع يعنى رقيق كيدل زائل شو.

حل اللغة: ① تحقق-ثابت شو-② الرجوع-واپس كيدل-③ المانع-منع كونكې-④ الرق-غلامي

تشريح:- د حضرت امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه مال مكفول به د مكفول عنه نه د واپس اخستلو سبب دادې.چه كفاله د مكفول عنه په حكم سره وی.او دلته كې دا سبب موجود دې.او مانع يعنى دده غلام كيدل زائل شو.ځكه چې د مولا د كفيل كيدلو په صورت كې مولا هم د خپلې آزادئ نه روسته مكفول له ته مال مكفول به اداكړې دې.نو هركله چې د رجوع سبب هم اوموندې شو.او مانع د رجوع هم زائل شو.نو په رومبئ مسئله كې به غلام ته د خپل مولا نه او په دويمه مسئله كې به مولا ته د خپل غلام نه د رجوع اختيار حاصل وی.

وَلَنَا او زمونږ دليل دادې. أَنَّهَا وَقَعَتْ غَيْرَ مُوجِبَةٍ لِلرُّجُوعِ چې كفاله موجب للرجوع واقع نشوه لِأَنَّ الْمَوْلَى لَا يَسْتَوْجِبُ عَلَى عَبْدِهِ دَيْنًا ځكه چې مولا پخپل غلام باندې د پور مستحق نه وی چراهو كَذَا الْعَبْدُ عَلَى مَوْلَاهُ فَلَا تَنْقَلِبُ مُوجِبَةً أَبَدًا اوهم دغه دول غلام پخپل مولا باندې.نودا به كله هم موجب للرجوع باندې نه بدليږی كَمَنْ كَفَلَ عَنْ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ لكه مثلاً يوكس د بل د اړخه دده د امر نه بغير كفالت كړې وی فَأَجَازَهُ نو مكفول عنه ده ته اجازت وركړو.

حل اللغة: ① يستوجب-واجبوی-② تنقلب-ګرځی-③ ابدا-هميشه-④ اجاز-اجازت وركړو

تشريح:- زمونږ دليل دادې.چه د غلام د خپل مولا د اړخه يا مولا ته د خپل غلام د اړخه كفيل كيدل موجب للرجوع نه دی.يعنى په دواړه صورتونوكې كفاله د رجوع سبب نه دې.ځكه چې مولا پخپل غلام باندې د پور مستحق نه وی.او غلام پخپل مولا باندې د پور مستحق نه وی.نوهركله چې هيڅ يو ته د پور استحقاق حاصل نه دې.نودا كفاله به غيرموجب للرجوع واقع كيږی.اوكومه كفاله چې غير موجب للرجوع واقع شوې وی.هغه كله هم په موجب للرجوع سره نه بدليږی.يعنى هركله چې په ابتداء كې موجب للرجوع نه ده.نو په انتهاء كې به هم موجب للرجوع سره نه بدليږی.اوهركله چې دا كفاله موجب للرجوع نه ده.نومكفول له ته د ادا كاوه نه روسته به نه غلام ته خپل مولا اړخ ته درجوع كاوه اختيار وی.او نه به مولا ته خپل غلام اړخ ته د رجوع اختيار وی.او ددې مثال دادې.لكه چې يوكس د بل سړی د اړخه مكفول به ادا كړو.نو كفيل ته به مكفول عنه اړخ ته د رجوع اختيار نه وی.ځكه چې په حالت د بقاء كې اګرچه د مكفول عنه حكم موجود دې.خوپه ابتداء كې موجود نه وو.نوپه ابتداء كې د مكفول عنه امر نه موندلو په وجه چونكه كفيل ته د رجوع حق نه وو.په دې وجه به په انتهاء كې هم د رجوع حق نه وی.اګرچه په انتهاء كې د مكفول عنه امر اوموندې شو.ځكه چې كومه كفاله غير موجب للرجوع واقع شوې وی.هغه په موجب للرجوع سره نه بدليږی.

### د مال كتابت د كفالت حكم

وَلَا تَجُوزُ الْكَفَالَةُ بِمَالِ الْكِتَابَةِ او د مال كتابت كفاله جائز نه ده. حُرٌّ تَكَفَّلَ بِهِ أَوْ عَبْدٌ كه دده كفالت آزاد اوكړی.او كه غلام،

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه د مولا لپاره د مكاتب د اړخه د مال كتابت كفيل كيدل جائز نه دی.كه كفيل آزاد وی.اوكه غلام وی.ابو الحسين قدوری رحمه الله مال كتابت اووئيل.او بدل كتابت ئې اونه وئيل.ځكه چې د مال كتابت لفظ بدل كتابت ته ګډ دې.او هرهغه دين ته ګډ دې.كوم چې د مولا په مكاتب باندې وی. لنډيز داچه د مولا په مكاتب باندې وی.د بدل كتابت كفيل كيدل جائز دی.اونه د هغه دين كفيل كيدل جائز دی.كوم چې د مولا لپاره نه د بدل كتابت كفاله خوځكه ناجائز ده.چه بدل كتابت داسې دين دې.كوم چې غيرمستقر او غيرثابت وی.

لِأَنَّهُ دَيْنٌ ثَبَتَ مَعَ الْمُنَافِي ځكه دا داسې قرضه ده.چه د منافي باوجود ثابت شوې ده فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ صِحَّةِ الْكَفَالَةِ نود [كف]اله صحيح كيدلو په حق كې به نه ښكاره كيږی.



تشريح:- او غير ثابت ځكه دې.چه بدل كتابت د منافي يعنى د رقيت باوجود ثابت شوې دې.يعنى غلام كيدل او په دې باندې د مولا قرضه كيدل دواړوكې منافات دې.په دې طريقه چې په مكاتب كه د بدل كتابت يو درهم باته وی.نو بيا به هم دې غلام وی.او مولا چونكه خپل غلام باندې د مال نه مستحق كيږی.لكه څنګه چې په مخكنۍ مسئله كې تيرشوی دی.په دې وجه د قياس تقاضا داده.چه په مكاتب باندې د بدل كتابت واجبول صحيح نه وی.خود الله تعالى د قول ﴿فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا﴾ په وجه قياس ترك كړې شوې دې.اود منافي يعنى د رقيت باوجود په مكاتب باندې بدل كتابت ثابت شوې دې.اوكوم شئ چې منافي سره ثابت وی.هغه غيرمستقر وی.يعنى من وجه ثابت وی.او من وجه ثابت نه وی.نو ثابته شوه.چه بدل كتابت غيرمستقر دې.يعنى من وجه ثابت دې.او من وجه ثابت نه دې.اوهركله چې بدل كتابت غيرمستقر دې.نود كفاله صحيح كيدلو په حق كې به ددې دين كيدل نه ښكاره كيږی.ځكه چې كفاله د دين مستقر صحيح كيږی.د دين غيرمستقر كفاله نه صحيح كيږی.

وَلِأَنَّهُ لَوْ عَجَّزَ نَفْسَهُ اوځكه كه مكاتب خپل خان عاجز كړو سَقَطَ نو مال كتابت به ساقط شی.

حل اللغة: ① عجز-عاجز شو-② سقط-ساقط شو-③ الوجه-طريقه-④ الاتحاد-يووالې

تشريح:- د بدل كتابت د غير مستقر كيدلو دوهم دليل دادې.كه مكاتب خپل خان د بدل كتابت ادا كاوه نه عاجز كړی.نو بدل كتابت به ساقطيږی.حالانكه دين مستقر يا خو په ادا كاوه سره ساقطيږی.اويا د دائن په برى كاوه سره ساقطيږی.او دلته كې په دواړه خبروكې يوه خبره هم نه موندلې كيږی.نو بدل كتابت به دين غير مستقر وی.بهرحال په ذكرشوی دواړه دليلونو سره د بدل كتابت غيرمستقر كيدل ثابت شوی دی.اود دين غيرمستقر كفاله نه جائز كيږی.لهذا د بدل كتابت كفاله به هم جائز نه وی.

وَلَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ فِي ذِمَّةِ الْكَفِيلِ اود كفيل په ذمه كې په دې طريقه ددې ثابتول ممكن نه دی وَإِثْبَاتُهُ مُطْلَقًا يُنَافِي مَعْنَى الضَّمِّ اودا مطلقاً ثابتول د ضم دمعنى منافي دی. لِأَنَّ مِنْ شَرْطِهِ الِاتِّحَادُ ځكه چې د ضم شرط اتحاد دې.

تشريح:- د بدل كتابت د كفالې په عدم جواز باندې دوهم دليل دادې.كه د بدل كتابت كفاله صحيح وی.نو ددې دوې (دوه) صورتونه دی.① يا به په كفيل باندې ددې ثبوت په داسې طريقه وی.په كومه طريقه چې ددې ثبوت په اصيل يعنى مكاتب باندې دې.او په مكاتب باندې د بدل كتابت ثبوت په دې طريقه دې.كه دې خپل خان عاجز ښكاره كړی.نو بدل كتابت ساقطيږی.② اويا به په كفيل باندې ددې ثبوت مطلقاً وی.اودا دواړه صورتونه باطل دی.د اول باطل كيدل ښكاره دی.ځكه چې هركله اصيل يعنى مكاتب خپل خان د بدل كتابت ادا كاوه نه عاجز ښكاره كړی.نودې واپس د خپل مولا رقيق جوړيږی.لكه څنګه چې مخكې وو.او كفيل داسې نه دې.يعنى كه كفيل خپل خان عاجز ښكاره كړی.نو دې نه رقيق كيږی.نو ثابته شوه.چه په كفيل باندې بدل كتابت داسې نه ثابتيږی.لكه څنګه چې په اصيل يعنى مكاتب باندې ثابت شوې دې.او دوهم ځكه باطل دې.چه د كفاله ركن ضم (ملاوول) دې.اود ضم شرط دادې.چه د كفاله په وجه كوم شئ واجب شوې دې.ددې په اوصافوكې اتحاد وی.يعنى په كومو اوصافو سره چې دا شئ په اصيل (مكفول عنه) باندې واجب وو.هم په دغه اوصافو سره به په كفيل باندې هم واجب وی.مثلاً كه قرضه په اصيل باندې مؤجل ده.نو په كفيل به هم مؤجل وی.او كه په اصيل باندې دين كره يا كهوټه وی.نو په كفيل به هم داسې وی.او دلته كې دا اتحاد موجود نه دې.ځكه چې په كفيل باندې بدل كتابت يعنى د مال مكفول به ثبوت مطلق دې.او په اصيل يعنى مكاتب باندې مقيد دې.په دې طريقه كه دې خپل خان عاجز ښكاره كړی.نو بدل كتابت ساقطيږی.او دې پخپله رقيق كيږی.نوهركله چې په كفيل باندې د بدل كتابت ثبوت مطلق شو.او په اصيل باندې مقيد شو.نود كفاله ركن يعنى ضم (د اتحاد شرط) اونه موندې شو.اوهركله چې شرط اونه موندې شو.نو كفاله به هم صحيح نه وی.نو معلومه شوه.چه د بدل كتابت كفاله جائز نه ده.اود بدل كتابت نه علاوه كه د مولا په مكاتب باندې دين وی.نو ددې كفاله ځكه ناجائز ده.كه مكاتب خپل خان عاجز ښكاره كړی.نود كتابت د فسخ كيدلو په وجه لكه څنګه چې بدل كتابت ساقطيږی.هم دغه ډول به هغه قرضه هم

ساقطیږي. کومه چې د مولا په مکاتب باندې وي. ځکه چې مولا پخپل غلام باندې د هیڅ شيء مستحق نه وي. نوېه مکاتب چې د بدل کتابت نه علاوه کومه قرضه ده. هغه هم دین غیر مستقر دی. او وړاندې تیرشوی دی. چه د دین غیرمستقر کفاله جائز نه ده. په دې وجه به ددې دین کفاله هم جائز نه وي.

وَبَدَلُ السِّعَايَةِ كَمَالِ الْكِتَابَةِ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ (١) اود امام ابوحنیفه ﷺ په قول کې بدل سعایه د مال کتابت پشان دې لِأَنَّهُ كَالْمُكَاتَبِ عِنْدَهُ ځکه چې د امام صاحب ﷺ په نیز سعایت کونکې د مکاتب پشان دې.

تشریح:- صاحب دهدایه ﷺ فرمائی. چه دحضرت امام ابوحنیفه ﷺ په نیز بدل سعایه، د کفالې په عدم جواز کې د مال کتابت پشان دې. بدل سعایه داده. چه مولا د خپل غلام یوه برخه آزاده کړله. نودا غلام به د پاتې برخې (حصې) د قیمت په اندازه د خپل مولا لپاره سعی کوي. اوکله چې دې سعی اوکړي. اود پاتې برخې (حصې) قیمت اداکړي. نو دده دا برخه به هم آزاده وي. بهرحال د حضرت امام صاحب ﷺ په نیز لکه ځنګه چې د بدل کتابت کفاله جائز نه ده. دغه ډول د بدل سعایه کفاله هم جائز نه ده. ځکه چې د سعی کونکي غلام حکم هم هغه دې. کوم چې د مکاتب دې. یعنی لکه ځنګه چې د مکاتب شهادت نه قبلیږي. اود دوې (دوه) ښځو نه زیاتو سره نکاح نشی کولې. اود مکاتب په حدودو کې تنصیف کولې شی. دغه ډول سعی کونکې غلام هم د دوې (دوه) نه زیاتو ښځو سره نکاح نشی کولې. او دده شهادت نه قبلیږي. او دده په حدودو کې تنصیف کیږي. نوهرکله چې د امام صاحب ﷺ په نیز سعی کونکې د مکاتب پشان دې. نولکه ځنګه چې د مکاتب د اړخه مولا لپاره د مال کتابت کفاله جائز نه ده. دغه ډول به د بدل سعایه کفاله هم جائز نه وي.

او صاحبین [illegible] فرمائي. چې د بدل سعایه کفاله جائز ده. ځکه چې بدل سعایه دین مستقر دې. په دې طریقه چې سعی کونکې غلام نه عاجز کیداې شی. اونه بدل سعایه دده نه ساقط کیداې شی. نو سعی کونکې غلام داسې دې لکه آزاد قرضدار، اود آزاد قرضدارا د اړخه کفاله جائز ده. په دې وجه د سعی کونکی غلام د اړخه مولا لپاره د بدل سعایه کفاله هم جائز ده.

# كتاب الحوالة

ژباړه:- (دا) کتاب د حواله (په بیان کې) دې.

تشریح:- لکه ځنګه چې په کفاله کې کفیل خپل خان باندې هغه شيء لازموي. کوم چې په اصیل باندې واجب وو. دغه ډول په حواله کې محتال علیه باندې هغه شيء لازمولې شی. کوم چې په محیل باندې واجبیږي. اود دواړو مقصد توثق او اعتماد دې. یعنی د کفاله مقصد مکفول له ته اطمینان ورکول دی. او په حواله کې محتال له ته اطمینان ورکولې شی. هم د دې مناسبت په وجه ئې کتاب الحواله په کتاب الکفاله پسې روستو ذکر کړلو

وجه تقدیم الکفالة ● اوحواله چونکه د اصیل براءت ته متضمن ده. په دې وجه دا په منزله د مرکب ده. اوکفاله چونکه براءت د اصیل ته متضمن نه وي. په دې وجه دا په منزله د مفرد دې. او مفرد چونکه په مرکب باندې مقدم وي. په دې وجه کفاله مقدم او حواله مؤخر کړې شوې ده.

معنی الحوالة ● حواله د زوال او نقل په معنی باندې دلالت کوي. هم ددې نه تحویل دې. یعنی یو شيء د یو محل نه بل محل اړخ ته منتقل کول.

تعریف الحوالة شرعاً ● په اصطلاح د شریعت کې حواله وائی. د مدیون د ذمه نه د ملتزم ذمې اړخ ته مطالبه منتقل کول. بیا بعض مشائخ وائی. چه دحواله په پوره کیدلو سره چې لکه ځنګه محیل د مطالبې نه بری کیږي. دغه ډول د پور نه هم بری کیږي. او بعض وائی چه صرف د مطالبې نه بری کیږي. د پور نه نه بری کیږي.

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير (٦/٢٤٥) والكفاية (٦/٣٤٥) نقلاً القول الراجح (١٠٣/٢)-



په حواله کې څلور لفظونه وئیلې شی. ① محیل، مدیون ② محتال له، دائن قرضخواه ③ محتال علیه، هغه کس چې حواله ئې قبول کړې ده. ④ محتال به، هغه مال کوم چې قبول کړې شوې دې. یعنی نفس دین.....

قسمې الحوالة ● د حواله دوې (دوه) قسمونه دی. یو ډول حواله مطلقه ده دا دې ته وائی چې په دې کې هیڅ قید نه وي. بیا دحواله مطلقه دوې (دوه) قسمونه دی. ① میعادی ② غیرمیعادی یعنی فی الحال.

او دوهم ډول حواله مقیده ده دا دې ته وائی چې محیل یعنی مدیون خپل مدیون اړخ ته مطالبه منتقل کړي. مثلاً د خالد په حامد باندې یو زر روپۍ دی. اود حامد په شاهد باندې پنځلس سوه روپۍ دی. نو حامد شاهد ته اووئیل چه ته زما په قرضه کې زر روپۍ خالد ته ورکړه. نودې ته حواله مقیده وئیلې شی.

## د حواله شرعي حیثیت

قَالَ وَهِيَ جَائِزَةٌ بِالدُّيُونِ ابو الحسین قدوری ﷺ فرمائی. اود قرضو حواله جائز ده. قَالَ ﷺ مَنْ أُحِيلَ عَلَى مَلِيءٍ فَلْيَتْبَعْ (١) ځکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی. چه کوم کس په توانګر باندې حواله کړې شی. نودې دې اتباع اوکړي.

حل اللغة: ① الديون -جمع دین، قرض-② احیل-احالة ،حواله ورکول-③ ملیء-مالدار-④ يتبع-الإتباع وروسی کیدل

تشریح:- شیخ ابوالحسین قدوری ﷺ فرمائی. چه د قرضونو حواله جائز ده. اوپه جواز باندې نقلی او عقلی دواړه قسمه دلیلونه موجود دی. نقلی دلیل د ابوهریره ﷺ حدیث دې. د صحیحینو الفاظ دادی. «مطل الغنی ظلم واذا اتبع احدکم علی ملیء فلیتبع» یعنی د توانګر ټال مټاړه کول ظلم دې. او کله چې په تاسو کې څوك توانګر پسې اولګولې شی. نو اتباع دې اوکړي. یعنی محتال له دې حواله قبول کړي. او په طبراني کې دا حدیث په دې الفاظو سره دې. «مطل الغنی ظلم ومن أحیل علی ملیء فلیتبع» یعنی د توانګر ټال مټاړه کول ظلم دې. اوکوم کس چې په مالداره باندې حواله کړې شی. نو اتباع دې اوکړي. حاصل داکه مدیون خپل پور د یومالدار اړخ ته منتقل کړي. اود اداکاوه ذمه دار دې مقرر کړي. نو توانګر له پکار دی. چه دې ټال مټاړه اونکړي. بلکه قبول دې کړي. او هرکله چې توانګر د دین اداکول قبول کړي. نو دائن یعنی محتال له دې هم قبول کړي. نخره بازي دې نه کوي. دا روایت کم ازکم د حواله په جواز باندې ښکاره شهادت دې.

وَلِأَنَّهُ الْتَزَمَ مَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ اوځکه چې ده دداسې شيء التزام کړې دې. د کوم په سپارلو باندې چې قادر دې. فَتَصِحُّ كَالْكَفَالَةِ نو حواله صحیح ده. لکه ځنګه چې کفاله صحیح کیږي.

حل اللغة: الالتزام -لازم کیدل-التسليم-سپارل-تنبیء، انباء-خبرورکول-التحويل-اړول

تشریح:- عقلی دلیل دادې. چه محتال علیه پخپل خان باندې داسې شيء لازم کړې دې. چې ددې په سپارلو باندې قادر دې. او داسې شيء لازمول چې ددې په سپارلو باندې قادر وي. صحیح ده. په دې وجه د کفاله پشان حواله به هم صحیح وي.

وَإِنَّمَا اخْتُصَّتْ بِالدُّيُونِ او حواله دیون سره خاص کړې شوې ده. لِأَنَّهَا تُنْبِئُ عَنِ النَّقْلِ وَالتَّحْوِيلِ ځکه چې دا د نقل او تحویل نه خبر ورکوي. وَالتَّحْوِيلُ فِي الدَّيْنِ لَا فِي الْعَيْنِ او تحویل صرف په دین کې کیږي. په عین کې نه کیږي.

تشریح:- پاتې شوه داخبره چې حواله دیون سره ولې خاص کړې شوې ده؟ نو ددې څواب دادې. چه د حواله معنی نقل او تحویل ده. او تحویل په دیون کې ممکن دې. خو په اعیان کې ممکن نه دې. ځکه چې دین غیرمعین وي. نودا محتال علیه هم اداکولې شی. او عین چونکه متعین وي. په دې وجه دا هم هغه اداکولې شی. چه دچا سره موجود

(١) من حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه أحمد في المسند (٤٦٣/٢) وابن أبي شيبة في مصنفه والطبراني في معجمه الوسط)_

دي.نو ثابته شوه.چه حواله د ديونو جائز ده.اود اعيانو حواله جائز نه ده.صاحب د كفايه ﷫ هم دا خبره پخپل علمی اندازكي داسې بيان كړې ده.چه حواله كوم چې په نقل باندې دلالت كوي.ددې نه مراد نقل شرعی دې.او دين وصف شرعی دې.نو نقل شرعی به په هغه شئ كې موثر وی.كوم چې شرعاً ثابت وی.نو دين كوم چې وصف شرعی دې.او شرعاً ثابت دې.دا به د نقل شرعی نه منتقل كيږي.او پاتې شو عين،نودا چونكه حسی دې.په دې وجه به د نقل شرعی نه نه منتقل كيږي.بلكه نقل حسی اړخ ته به محتاج وی.ددې نه هم ثابته شوه.چه حواله په دين كې جائز ده.خو په اعيانو كې حواله جائز نه ده.

## د حواله لپاره د رضامندئ شرطيت

قَالَ وَتَصِحُّ الْحَوَالَةُ بِرِضَا الْمُحِيلِ وَالْمُحْتَالِ وَالْمُحْتَالِ عَلَيْهِ فرمائي.اوحواله د محيل، محتال له،اود محتال عليه په رضامندئ سره صحيح كيږي. أَمَّا الْمُحْتَالُ فَلِأَنَّ الدَّيْنَ حَقُّهُ بهرحال محتال له خو ځكه چې قرضه دده حق دې. وَهُوَ الَّذِي يَنْتَقِلُ بِهَا او قرضه د حواله په ذريعه منتقل كيږي. وَالذِّمَمُ مُتَفَاوِتَةٌ فَلَا بُدَّ مِنْ رِضَاهُ او ذمې متفاوت وی.په دې وجه د محتال له رضامندی ضروری ده.

حل اللغة: الرضا-رضامندي-② ينتقل،انتقال-نقل كيدل-③ الذمم-جمع د ذمة،غاړه-④ متفاوتة-مختلف

تشريح:- ابو الحسين قدوري ﷫ فرمائي.چه د حواله د صحت لپاره د محيل، محتال، اود محتال عليه رضا مندی شرط ده.د محتال له رضامندی شرط كيدلو كې د هيڅ چا اختلاف نشته.

او ددې دليل دادې.چه قرضه د محتال له حق دې.او قرضه د حواله په ذريعه منتقل كيږي هم.خود خلګو په ذمو كې تفاوت دې.ځكه چې بعض خلګ په پور ادا كاوه كې ډيرګړه (ايمانداره) وی.او بعض دهوكه بازه (او بې ايمانه) ډول خلګ ټال مټوله كوی.نوكه د محتال له رضامندی شرط نه وی.نو ډير خله محتال له په ضرر كې اخته كيږي.په دې طريقه چې محتال له داسې كس مقرر كړې وی.چه ډير انتهائی ناديدكه (دهوكه باز) او بدمزاج وی.نو په داسې صورت كې چونكه د محتال له لپاره خپل پور وصولول سخت مشكل وی.په دې وجه د حواله د صحت لپاره د محتال له رضامندی شرط ګرځولې شوې ده.

وَأَمَّا الْمُحْتَالُ عَلَيْهِ فَلِأَنَّهُ يَلْزَمُهُ الدَّيْنُ او پاتې شو محتال عليه،نو ځكه چې دا قرضه به دده په ذمه لازم وی. وَلَا لُزُومَ بِدُونِ الْتِزَامِهِ او دده د لازمولو نه بغير لزوم نشی كيدې.

حل اللغة: ① المحتال عليه -چه په چا حواله وركړې شوې وی-② يلزم،الزام-لازميدل-③ دون-بغير-ا④ لدين-قرض

تشريح:- او پاتې شو محتال عليه،نو كه د محيل په محتال عليه باندې قرضه نه وی.نود محتال عليه رضامندی بالاجماع شرط ده.اوكه د محيل په محتال عليه باندې قرضه وی.نو زموږ په نيز په دې صورت كې هم د محتال عليه رضامندی شرط ده.

دليل دادې. چې حواله د محيل د اړخه محتال عليه باندې قرضه لازمول دی.او لزوم د التزام نه بغير نه كيږي.ګنی هر سړې چې د بل په ذمه څه غواړی.لازموی به.په دې وجه محتال عليه باندې قرضه لازمولو لپاره ضروری ده.چه دې پخپله خپل خان باندې لازم كړی.اوهركله چې محتال عليه پخپله خپل خان باندې قرضه لازم كړله.نود محتال عليه رضامندی اومونډلې شوه.نو معلومه شوه.چه په محتال عليه باندې قرضه لازمولو لپاره دده رضامندی هم شرط ده.

وَأَمَّا الْمُحِيلُ فَالْحَوَالَةُ تَصِحُّ بِدُونِ رِضَاهُ او پاتې شو محيل،نو حواله دده د رضامندئ نه بغير صحيح كيږي. ذَكَرَهُ فِي الزِّيَادَاتِ دا امام محمد ﷫ په زيادات كې ذكر كړې دی. لِأَنَّ الْتِزَامَ الدَّيْنِ مِنَ الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ تَصَرُّفٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ ځكه چې د محتال عليه د اړخه د پور التزام پخپل حق كې يو تصرف دې. وَهُوَ لَا يَتَضَرَّرُ بِهِ او په دې سره محيل ته څه ضرر هم



نه رسيږي. بَلْ فِيهِ نَفْعُهُ بلكه په دې كې دده نفع ده. لِأَنَّهُ لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ إِذَا لَمْ يَكُنْ بِأَمْرِهِ ځكه كله چې د محيل په امر سره حواله نه وی.نو محتال عليه د محيل نه واپس هم نشی اخستلې.

حل اللغة: ① يتضرر -ضرر رسی-② يرجع-واپس اخلی-③ نفع-فائده-④ امر-حكم

تشريح:- او پاتې شو محيل، نو امام قدوري ﷫ فرمائي.چه د حواله صحيح كيدلو لپاره د محيل رضامندی هم شرط ده.لكه څنګه چې په متن كې په دې قول سره ذكرشوې ده «وتصح الحوالة برضا المحيل» د امام ابوالحسين قدوري ﷫ د دې روايت دليل دادې.چه بنه (او ديندار) خلګ دا نه خوښوی.چه ددوی بوج په بل چا وی.بلكه ډير خله شرم محسوسوی.په دې وجه محيل يعنی د قرضدار رضامندی هم ضروری ده.② دوهم دليل دادې. چې امام ابوالحسين قدوري ﷫ د محيل رضامندی هغه وخت شرط ګرځولې دې.كله چې دمحيل په محتال عليه باندې قرضه وی.او دغه وخت د محيل رضامندی ځكه ضروری ده چه په دې صورت كې محتال عليه نه د محيل مطالبه ساقطيږي.اوهركله چې په دې صورت كې د محيل مطالبه ساقطيږي.نو ددې حواله صحيح كيدلو لپاره به د محيل رضامندی شرط وی.حاصل داچه د حواله ابتداء كله د محيل نه كيږي.اوكله د محتال عليه نه.اول احاله ده.او ثانی احتيال دې.او احاله فعل اختياری دې.چه بغير د ارادې او رضامندئ نه ممكن نه ده.هم دا د ابوالحسين قدوري ﷫ د روايت دليل دې.او احتيال د محيل د ارادې نه بغيرصرف د محتال عليه په اراده سره مكمل كيږي.هم دا د زيادات د روايت دليل دې.

① البته په دې مسئله كې امام محمد ﷫ په زيادات كې فرمائي.چه حواله د محيل د رضامندئ نه بغير هم صحيح كيږي.

② دليل دادې.چه د محتال عليه پخپل خان باندې قرضه لازمول پخپل حق كې تصرف كول دی.او په دې تصرف سره د محيل څه نقصان هم نشته.بلكه يو ډول نفع ده.فوری نفع خو داده.چه د محيل د ذمه نه مطالبه ساقطيږي.او نتيجة نفع داده.چه حواله هركله دمحيل په حكم سره نه ده.نومحتال عليه ته د پور ادا كاوه نه روسته محيل اړخ ته د رجوع كاوه اختيار نه وی.اودا خبره منلې شوې ده.چه هر سړی ته د خپل ذاتی تصرف اختيار دې.په دې شرط چې په دې كې د بل چا څه ضرر نه وی .نو معلومه شوه.چه د حواله صحيح كيدلو لپاره د محيل رضامندی شرط نه ده.

## د حواله پوره كيدلو سره د محيل بری كيدل

قَالَ وَإِذَا تَمَّتِ الْحَوَالَةُ بَرِئَ الْمُحِيلُ مِنَ الدَّيْنِ بِالْقَبُولِ اوكله چې حواله پوره شوه.نو په قبلولو سره محيل د پور نه بری كيږي.

حل اللغة: ① تمت-پوره شوه-② برئ-خلاص شو-③ توثق-مضبوطولې شی-④ الدين-قرض

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه د محتال له او محتال عليه قبلولو سره هركله حواله پوره شوه.نو محيل به د پور نه بری كيږي.

وَقَالَ زُفَرُ لَا يَبْرَأُ اعْتِبَارًا بِالْكَفَالَةِ او د امام زفر ﷫ فرمائي. چې په حواله باندې قياس كاوه سره محيل (د پور او مطالبې هيڅ شئ نه) نه بری كيږي. إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَقْدُ تَوَثُّقٍ ځكه چې په دې دواړو كې هريو عقد توثق (اعتماد) دې.

تشريح:- او امام زفر ﷫ فرمائي.چه محيل به نه بری كيږي.د دوی دليل په كفاله باندې قياس دې.او وجه د قياس دا ده.چه په حواله او كفاله دواړو كې هريو عقد توثق (اعتماد) دې.يعنی د مضبوطوالی لپاره د كفاله پشان حواله هم كولې شی.نو لكه څنګه چې په كفاله كې اصيل يعنی مكفول عنه نه بری كيږي.دغه ډول په حواله كې هم اصيل يعنی محيل نه بری كيږي.

وَلَنَا أَنَّ الْحَوَالَةَ لِلنَّقْلِ لُغَةً وَمِنْهُ حَوَالَةُ الْغِرَاسِ وَالدَّيْنُ او زموږ دليل دادي چه حواله په لغت كي د نقل كاوه په معنى كي ده. اوهم ددي نه حوالة الغروس ده. مَتَى انْتَقَلَ عَنِ الذِّمَّةِ لَا يَبْقَى فِيهَا او كله چې قرضه د ذمې نه منتقل شوه. نو په ذمه كي پاته نه پاتې كيږي.

**تشريح:-** زموږ دليل دادي چه په لغت كي حواله د منتقل كاوه په معنى كي راځي. اوهم ددي نه حوالة العراس، د ونې منتقل كولو په معنى كي راځي. نود حواله په ذريعه پور منتقل كول ضروري شو. او هر كله چې قرضه د ذمې نه منتقل شوه. نود محيل په ذمه كي به پاته نه پاتې كيږي. او هر كله چې د محيل په ذمه كي قرضه پاته نشوه. نو محيل بري شو.

أَمَّا الْكَفَالَةُ فَلِلضَّمِّ او پاتې شوه كفاله، نودا د ملاوهلو په معنى كي ده. وَالْأَحْكَامُ الشَّرْعِيَّةُ عَلَى وِفَاقِ الْمَعَانِي اللُّغَوِيَّةِ او احكام شرعيه د لغوي معنى موافق وي.

**حل اللغة:** ① الضم -يوځاي كيدل- ② وفاق-موافق- ③ الاملاء-مالداري- ④ التوثيق-مضبوطول

**تشريح:-** او پاتې شوه كفاله، نو ددې لغوي معنى د ضم ( ملاوول) راځي. نو په كفاله كي ،، الذمة الى الذمة،، معتبر ده. اودا اصول ثابت شوي دي. چه احكام شرعيه د خپلې لغوي معنى موافق وي. نود حواله لغوي معنى په اعتبار سره محيل د پور او مطالبې نه بري كيږي. اود كفاله د لغوي معنى په اعتبار سره مكفول عنه باندې قرضه او مطالبه پاته كيږي.

وَالتَّوَثُّقُ بِاخْتِيَارِ الْأَمْلَأِ وَالْأَحْسَنِ فِي الْقَضَاءِ او توثق په ډير مالداره او اداكولو كي د ښه سړي اختيارولو سره دي.

**تشريح:-** دا عبارت د يو سوال ځواب دي. سوال دادي. چه هر كله قرضه د محيل نه منتقل شوه. او په محتال عليه باندې راغلله. او محيل بري شو. نو حواله عقد توثق چرته پاتې شوه. صرق دومره شوه. چه مخكي قرضه په محيل وه. اود حواله نه روسته په محتال عليه باندې راغله؟

ځواب•ددي ځواب دادي. چه د توثق (اعتماد) او مضبوطوالي لپاره دا ضروري نه ده. چه قرضه په دوې (دوه) سړو باندې واجب وي. او قرضخواه ته د دواړو نه د مطالبې حق دي. بلكه د محيل د براءت باوجود توثق حاصليږي. په دي طريقه چې د محيل يعنى د قرضدار په نسبت محتال عليه زيات توانګر وي. ياد محيل په نسبت محتال عليه په ادا كاوه كي د حسن سلوك معامله كوي. نو په دي دواړو صورتونو كي د محيل په نسبت محتال عليه نه په قرضه وصولولو كي زيات توثق او مضبوطي ده. نو معلومه شوه. چه د محيل براءت باوجود هم حواله سره توثق (اعتماد) حاصليږي.

وَإِنَّمَا يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ او محتال له به په قبلولو باندې مجبوره كولې شي. إِذَا نَقَدَ الْمُحِيلُ كله نې چې محيل اداكړي. لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ عَوْدَ الْمُطَالَبَةِ إِلَيْهِ بِالتَّوَى خكه چې مال د هلاكيدلو په وجه محيل ارخ ته د مطالبې واپس راتګ و احتمال دي. فَلَمْ يَكُنْ مُتَبَرِّعًا نو محيل به متبرع نه وي.

**حل اللغة:** ① يجبر -مجبورلي شي- ② عود-واپس كيدل- ③ التوى-هلاكيدل- ④ متبرع-احسان كونكي

**تشريح:-** دا عبارت د يو سوال ځواب دي. سوال دادي. كه محيل، محتال له ته د محتال عليه د ادا كاوه نه وړاندې قرضه اداكړي. نو محتال له به په قبلولو باندې مجبورولې شي. ددي نه معلومه شوه. چه قرضه د محيل په ذمه پاته ده. خكه كه د محيل په ذمه قرضه پاته نه وه. نو محيل به په پور ادا كاوه كي متبرع وو. اود متبرع تبرع قبلولو باندې هيڅ نشي مجبوره كولې. نو محتال له په قبلولو باندې مجبورول ددې خبرې علامت دي. چه محيل متبرع نه دي. او هر كله چې محيل متبرع نشو. نو معلومه شوه. چه دده په ذمه قرضه پاته ده. او په حواله كاوه سره دې نه دې بري شوي؟

ځواب•ددي ځواب دادي. چه د حواله په وجه قرضه محتال عليه ارخ ته منتقل كيدل، اود محيل بري كيدل يقيني ... خود پور هلاكيدلو په وجه (په دي طريقه چې محتال عليه د پور نه انكار اوكړي. يا مفلس (يعنى فقير) شي او



مړشي. دا احتمال شته. چه مطالبه محيل ارخ ته واپس راشي. او هر كله چې دا احتمال دي. نو محيل خالص متبرع نشو. او هر كله چې متبرع نشو. نود محتال له په قبلولو باندې به هم مجبورولې شي. خوكه دا سوال اوكړې شي. چه محيل د پور ادا كاوه په وخت يقيناً متبرع دي. خكه چې في الحال په ده باندې هيڅ قرضه نشته. اود پور هلاكيدلو په وجه محيل ارخ ته د مطالبې واپس راتګ، يوه موهوم (شكي) خبره ده. نو ددې ځواب دادي. چه متبرع هغه كس ته وائي. كوم چې په بل باندې د احسان اراده اوكړي. او ددې په ذريعه د خپل ځان نه ضرر لرې كول مقصود نه وي. حالانكه په دې ادا كاوه سره هم دا مقصود دي. خكه چې محيل قرضه ادا كړله. نود خپل ځان نه ئې د مطالبې امكان ساقط كړو. اود غريبۍ په وخت د قيد او جيل ضرر ئې لرې كړو. نو هر كله چې په دې ادا كاوه كي دفع د ضرر هم مقصود ده. نو محيل متبرع نشي كيدلې. او هر كله چې متبرع نشو. نو محتال له به په قبلولو باندې هم مجبورولې شي.

## په محيل باندې د محتال د رجوع كولو حكم

قَالَ وَلَا يَرْجِعُ الْمُحْتَالُ عَلَى الْمُحِيلِ إِلَّا أَنْ يَتْوَى حَقُّهُ او محتال له ته به محيل ارخ ته د رجوع حق نه وي. مګر داچه دده حق هلاك شي.

**تشريح:-** مسئله داده. چه د حواله مكمل كيدلو نه روسته محتال له ته محيل ارخ ته د رجوع كاوه اختيار نه وي. البته كه دده حق تلف كړې شي. مثلاً محتال عليه د حواله نه انكار اوكړي. يا مړشي. يا حاكم دده د مفلس كيدلو اعلان اوكړي. نو په دې صورت كي محتال له محيل ارخ ته رجوع كولې شي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا يَرْجِعُ وَإِنْ تَوِيَ او امام شافعي ﷫ فرمائي. چه رجوع به نه كوي. اګرچه هلاك شي. وَأَنَّ الْبَرَاءَةَ حَصَلَتْ مُطْلَقَةً خكه چې د محيل بري كيدل مطلقاً ثابت دي. فَلَا تَعُودُ إِلَّا بِسَبَبٍ جَدِيدٍ نو پور به نه واپس كيږي. مګر په نوي سبب سره.

**حل اللغة:** ① حصلت -حاصل شوې- ② جديد-نوې- ③ تنفسخ-فسخ كيږي- ④ الفوات-فوت كيدل

**تشريح:-** حضرت امام شافعي ﷫ فرمائي. چه د محتال له حق تلف كيدلو باوجود محتال له ته محيل ارخ ته د رجوع اختيار نشته. امام احمد ﷫ هم ددې قائل دې.

د امام شافعي ﷫ دليل دادي. چه د محيل بري كيدل مطلقاً ثابت دي. په دې كي هيڅ قيد نشته. چه د محتال له حق كه تلف كيدلو، نو دې به نه بري كيدلو. بلكه ده ارخ ته به محتال له ته د رجوع كاوه حق وي. بهرحال هر كله چې د محيل بري كيدل مطلقاً ثابت دي. نو په محيل به قرضه نه واپس كيږي. البته كه څه نوې سبب پيدا شي. (نو قرضه به واپس كيږي) مثلاً محيل د بيع يا حواله په ذريعه ذكرشوې مال پخپله ذمه واخستلو. نود محتال له به نوې مطالبه په ده باندې پيدا شي.

وَلَنَا أَنَّهَا مُقَيَّدَةٌ بِسَلَامَةِ حَقِّهِ لَهُ او زموږ دليل دادي. چه براءت دده د حق په سلامتيا سره مقيد دي. إِذْ هُوَ الْمَقْصُودُ خكه چې هم دا مقصود دي. أَوْ تَنْفَسِخُ الْحَوَالَةُ لِفَوَاتِهِ يا به د مقصود فوت كيدلو په وجه حواله فسخ كيږي. لِأَنَّهُ قَابِلٌ لِلْفَسْخِ خكه چې عقد حواله فسخ قبلونكي دي. فَصَارَ كَوَصْفِ السَّلَامَةِ فِي الْمَبِيعِ نوداسې شوه. لكه په مبيع كي د سلامتيا وصف.

**تشريح:-** او زموږ دليل دادي. چه د محيل بري كيدل د محتال له د حق په سلامتيا سره مقيد دي. خكه چې د حواله نه مقصود هم دا دي. چه د محتال له حق صحيح سلامت محفوظ شي. خو هر كله چې شرط يعنى د محتال له د حق سلامتيا فوت شوه. نو حواله فسخ شوه. اود محتال له حق په محيل باندې واپس راغى. او هر كله چې د محتال له حق په محيل باندې واپس راغى. نو محتال له ته دده ارخه ته د رجوع كاوه اختيار هم حاصل شو. لكه څنګه چې د مبيع سلامتيا په بيع كي دننه شرط وي. اګرچه په لفظونو كي دا شرط موجود نه وي. مثلاً يو سړي څه شې واخستلو. اود قبضه نه وړاندې هغه هلاك شو. نو عقد فسخ كيږي. اود مشتري حق په ثمن كي واپس راځي. ددې دليل نه ښكاره كيږي. چه د حواله د مقصود فوت كيدلو په وجه حواله د فسخ كاوه نه بغير فسخ كيږي. او قرضه په محيل باندې

واپس راځي.بعض مشائخو هم دا اختیار کړي دي.او بعض مشائخو فرمائیلي دي. چې د حواله مقصود یعنې سلامتیا د دین فوت کیدلو په وجه به حواله فسخ کولې شي.ځکه چې حواله فسخ قبلوي.تردې که محتال له او محیل دواړه په فسخ باندې راضي شو.نو حواله به فسخ کولې شي.او قرضه به په محیل باندې واپس راځي.لکه ځنګه چې د مبیع د سلامتیا وصف دې.په دې طریقه چې مشتري مبیع عیب دار اوموندلو.او ددې واپس کول نې اوغوښتل.نو بیع به فسخ کولې شي.اود مشتري ثمن به ده ته واپس ورکولې شي.ددې نه معلومیږي.چه حواله پخپله نه فسخ کیږي.بلکه فسخ کولې به شي.او قرضه به په محیل باندې واپس کولې شي.

**توې یعنې د تلف کیدلو بعض صورتونه**

قَالَ وَالتَّوٰى عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَحَدُ الْأَمْرَيْنِ اود امام ابوحنیفه ﷫ په نیز هلاکیدل د دوې (دوه) خبرو نه یوه ده. إِمَّا أَنْ يَّجْحَدَ الْحَوَالَةَ وَيَحْلِفَ او هغه داچه یا محتال علیه د حواله انکار اوکړي.او قسم اوخوري. وَلَا بَيِّنَةَ لَهُ عَلَيْهِ أَوْ يَمُوْتَ مُفْلِسًا اود محتال علیه خلاف محیل او محتال له سره بینه نه وي.یا محتال علیه فقیر مړشي

حل اللغة: ① یجحد -انکار کوي-② یحلف-قسم خوري-③ یموت-مړ کیږي-④ یتحقق-ثابتیږي

تشریح:- ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي.چه د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز په دوې (دوه) خبروکې د یوې خبرې په ذریعه توا متحقق کیږي.① محتال علیه د حواله انکار اوکړي.او قسم اوخوري.اود محتال علیه خلاف نه محیل سره بینه موجود وي.او نه محتال له سره بینه موجود وي.② یا محتال علیه مفلس شي.او مړشي.یعنې نه ده څه مال پریښودې وي.اونه ئې په چا باندې خپله قرضه پریښودې وي.اونه ئې خپل ځان باندې د محتال علیه لپاره کفیل پریښودې وي.

لِأَنَّ الْعَجْزَ عَنِ الْوُصُوْلِ يَتَحَقَّقُ بِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا ځکه چې په دې دواړو خبروکې هریو سره په حق وصولولو سره عاجزي متحقق کیږي. وَهُوَ التَّوٰى فِي الْحَقِيْقَةِ وَقَالَا هٰذَانِ الْوَجْهَانِ او هلاکیدل په حقیقت کې هم دا دي.او صاحبین ﷭ فرمائي.چه دا دوې (دوه) امله دي.

تشریح:- دلیل دادې.چه په دواړه صورتونوکې محتال له د خپل حق وصولولو نه عاجز دې.په رومبي صورت کې ځکه چې محتال له د محتال علیه نه په مطالبه کاوه باندې قادر پاتې نشو.او په دوهم صورت کې داسې ذمه پاتې نشوه.چه ددې سره د محتال له حق متعلق وي.بهرحال په حقیقت کې توی (هلاکیدل) هم دادي.

وَوَجْهٌ ثَالِثٌ وَهُوَ أَنْ يَّحْكُمَ الْحَاكِمُ بِإِفْلَاسِهِ حَالَ حَيَاتِهِ او یوه دریمه وجه ده.او هغه داده.چه د محتال علیه په ژوند کې حاکم دده د فقیرئ حکم ورکړي. وَهٰذَا بِنَاءٌ عَلٰى أَنَّ الْإِفْلَاسَ لَا يَتَحَقَّقُ بِحُكْمِ الْقَاضِي عِنْدَهُ[1] او دا اختلاف په دې باندې مبني دي.چه دامام صاحب ﷫ په نیز د قاضي په حکم ور کاوه سره فقیري نه متحقق کیږي. خِلَافًا لَّهُمَا د صاحبینو ﷭ اختلاف دي. لِأَنَّ مَالَ اللّٰهِ غَادٍ وَّرَائِحٌ (دامام صاحب دلیل دا دې) ځکه مال داسې شئ دې.چه صبائې راځي.او ماښام ځي.

حل اللغة: ① افلاس -غریب کیدل-② غاد-صبا تلونکې-③ رائح-ماښام راتلونکې-④ حیاة-ژوند

تشریح:- چه محتال له د خپل حق د حاصولونه عاجز شي نو د صاحبینو په نیز د دې دریم صورت دا هم دې چې حاکم د محتال علیه ژوند کې دده د افلاس (غربت) حکم ورکړي.یعنې دا اعلان اوکړي.چه فلانئ سړې مفلس ثابت شو.اوس به په ده باندې د هیڅ چا مطالبه مسموع نه وي.نو په دې صورت کې چونکه محتال له د خپل حق وصولولو نه عاجز دې په دې وجه به په دې صورت کې هم توی متحقق کیږي. خودامام ابوحنیفه ﷫ په نیز د قاضي په حکم ور کاوه سره افلاس نه متحقق کیږي.اود صاحبینو ﷭ په نیز د قاضي په حکم ور کاوه سره دې

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في فتح القدير(٦\٣٥٢) وردالمحتار(٤\٣٢٦) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٠٤)-



مفلس متحقق کیږي.هم دې خبرې ته علامه مرغیناني ﷫ په دې عبارت سره اشاره کړې ده چې «وهذا بناء على أن الإفلاس لا يتحقق بحكم القاضي عنده» د امام صاحب ﷫ دلیل دادې.چه مال تلونکې راتلونکې شئ دې.یو سړې سحر مالداره وي.او ماښام ته غریب کیږي.اوکله ددې برعکس کیږي.نو حاکم چې د چا د غربت حکم کړې دې.ډیره ممکن ده.چه په خپل ژوند کې توانګر شي.

**د محتال علیه د قول قبلولو صورتونه**

قَالَ وَإِذَا طَالَبَ الْمُحْتَالُ عَلَيْهِ الْمُحِيْلَ بِمِثْلِ مَالِ الْحَوَالَةِ اوکه محتال علیه د محیل نه د مال حواله دمثل مطالبه اوکړله. فَقَالَ الْمُحِيْلُ أَحَلْتُ بِدَيْنٍ لِّيْ عَلَيْكَ نو محیل اووئیل.چه ما د خپلې هغه پور په عوض کومه چې په تا باندې وه.حواله کړې وه. لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُ نود محیل قول به قبول نه وي.خو په حجت سره (به قبول وي). وَكَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ الدَّيْنِ او په محیل به د پور مثل واجب وي.

حل اللغة: ① حجة -دلیل-② یتحقق-واقع کیږي-③ ینکر-انکار کوي-④ دون-بغیر

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه محتال علیه د محیل د اړخه د پور ادا کاوه نه روسته د محیل نه د پور په مقدار د مال مطالبه اوکړله.نو محیل اووئیل.چه زما په تا کوم پور وو.ما ددې په عوض حواله کړې وه.یعنې ما دا وئیلي وو.چه زما په تا کوم پور دې.د هغې نه زما هغه قرضه اداکړه.کومه چې د محتال له په ما باندې ده.نو په دې صورت کې که محیل بینه پیش کړل.نود محتال علیه حق رجوع به باطل شي.اوکه محیل بینه پیش نکړې شو.نود محتال علیه قول به مع الیمین معتبر وي.او په محیل به دومره مقدار واجب وي.خومره مقدار قرضه چې محتال علیه اداکړې ده.

لِأَنَّ سَبَبَ الرُّجُوْعِ قَدْ تَحَقَّقَ ځکه چې د واپس کاوه سبب متحقق شو. وَهُوَ قَضَاءُ دَيْنِهٖ بِأَمْرِهٖ او هغه د محیل قرضه د هغه په حکم سره اداکول دي. إِلَّا أَنَّ الْمُحِيْلَ يَدَّعِيْ عَلَيْهِ دَيْنًا وَهُوَ يُنْكِرُ وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ خو داچه محیل په محتال علیه باندې د پور دعوه کوي.او محتال علیه منکر دې.اود منکر قول معتبر وي. وَلَا تَكُوْنُ الْحَوَالَةُ إِقْرَارًا مِّنْهُ بِالدَّيْنِ عَلَيْهِ او حواله د محتال علیه د اړخه خپل ځان باندې د پور اقرار نه وي. لِأَنَّهَا قَدْ تَكُوْنُ بِدُوْنِهٖ ځکه چې حواله کله کله د پور نه بغیر هم کیږي.

تشریح:- دلیل دادې.چه د محیل نه د پور واپس اخستلو سبب دادې.چه محتال علیه د محیل د اړخه دده په حکم سره قرضه اداکړي.او دلته کې دا سبب موجود دې.نو هرکله چې سبب د رجوع موجود دې.نو محتال علیه ته به محیل اړخ ته د رجوع اختیار حاصل وي.البته دومره خبره ده.چه محیل په محتال علیه باندې د خپلې پور دعوه کوي.او محتال علیه ددې منکر دې.او مدعي سره د بینه نه موجود کیدلو په صورت کې چونکه د منکرقول معتبر وي.ځکه به دلته کې هم د منکر یعنې د محتال علیه قول معتبر وي.خوکه دا اووئیلې شي.چه د محتال علیه حواله قبلول، د محتال علیه دده د پور اقرار کول دي.کومه چې د محیل په محتال علیه باندې واجب ده؟ نو ددې ځواب دادې.چه حواله چونکه کله د پور نه بغیر هم کیږي.په دې وجه د حواله په قبلولو سره د پور اقرار کول نه لازمیږي.

**په حواله شوي مال کښې د محیل او محتال له اختلاف**

قَالَ وَإِذَا طَالَبَ الْمُحِيْلُ الْمُحْتَالَ بِمَا أَحَالَهُ بِهٖ اوکه محیل د محتال له نه د هغه مال مطالبه اوکړله.کوم چې ده ته حواله کړې وو. فَقَالَ إِنَّمَا أَحَلْتُكَ لِتَقْبِضَهُ لِيْ نومحیل اووئیل.چه ما تاته ځکه حواله کړې وو.چه ته ئې زما لپاره قبول کړې. وَقَالَ الْمُحْتَالُ لَا بَلْ أَحَلْتَنِيْ بِدَيْنٍ كَانَ لِيْ عَلَيْكَ او محتال له اووئیل.نا بلکه تا ما ته هغه پور حواله کړې وو.کوم چې زما په تا باندې وو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُحِيْلِ نود محیل قول به قبول نه وي.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه هرکله محتال علیه، محتال له ته قرضه اداکړله.نو محیل د محتال له نه ددې پور مطالبه اوکړله.او وې وئیل.چه ما ددې پور وصولول په دې وجه ستا په حواله کړې وه.چه ته دا قرضه زما لپاره

وصول کړي.او قبضه ئې کړي.او محتال له اوونيل.چه داسې نه ده.بلکه زما چې کومه قرضه په تا باندې وه.د هغې وصولول دې زما په حواله کړی وو.نو په دې صورت کې به د محيل قول مع اليمين معتبر وی.مثلاً خالد د شاهد نه قرضه وصولول د حامد حواله کړل.نو خالد محيل، شاهد محتال عليه او حامد محتال له شو.نو خالد د شاهد نه مطالبه اوکړله.چه د کوم مال وصولول ما ستا په حواله کړی وو.هغه مال ماته اوسپاره.ځکه چې ما ځکه حواله کړې وو.چه ته ئې زما لپاره قبضه کړې.او حامد اوونيل.چه داسې نه ده.بلکه تا هغه قرضه زما په حواله کړې وه.کومه چې زما په تا باندې وه.نود خالد يعنی د محيل قول به مع اليمين معتبر وی.

لِأَنَّ الْمُحْتَالَ يَدَّعِي عَلَيْهِ الدَّيْنَ وَهُوَ يُنْكِرُ ځکه چې محتال له په محيل باندې د پور دعوه کوی.او محيل منکر دې.

تشريح:- دليل دادې.چه محتال له په محيل باندې د پور مدعی دې.او محيل ددې نه منکر دې.اوهرکله چې مدعی سره بينه موجود نه وی.نود منکر قول معتبر وی.په دې وجه په دې مسئله کې به د منکر يعنی د محيل قول مع اليمين معتبر وی.

وَلَفْظَةُ الْحَوَالَةِ مُسْتَعْمَلَةٌ فِي الْوَكَالَةِ او لفظ حواله دوکالت په معنی کې مستعمل دې. فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ مَعَ يَمِينِهِ نود محيل قول به مع اليمين معتبر وی.

حل اللغة: ① مستعملة -استعمال شوې -② يمين-قسم-③ الايداع -امانت کيخودل-④ الف-زر

تشريح:- دا عبارت د د يو اعتراض خواب دې.اعتراض دادې.چه حواله نوم دې.د پور منتقل کولو، نود محيل دا ونيل.چه ما د محتال له په حواله کړې ځکه وو.چه دې زما لپاره قبضه کړی.بې دليله او خلاف حقيقت دی.خواب*ددې خواب دادې.چه لفظ حواله مجازاً د وکالت په معنی کې هم استعماليږی.ځکه چې په وکالت کې هم تصرف د مؤکل نه وکيل اړخ ته منتقل کيږی.نو ممکن ده.چه محيل د حواله لفظ ونيلې وی.او وکالت ئې مراد اخستې وی.يعنی محتال له ئې ددې خبرې وکيل کړې وی.چه دې زما قرضه وصول کړی.په دې وجه به د محيل د قول تصديق کيږی.خو په يمين سره.ځکه چې حواله ونيلو سره د وکالت معنی مراد اخستلو کې يو ډول مخالفت ښکاره دې.

## د امانت دراهمو په بل باندې د حواله کولوحکم

قَالَ وَمَنْ أَوْدَعَ رَجُلاً أَلْفَ دِرْهَمٍ فرمائی.اويو کس يوسړی سره يو زر درهم وديعت کيخودلې. وَأَحَالَ بِهَا عَلَيْهِ آخَرَ فَهُوَ جَائِزٌ اود هغه دراهمو سره کوم چې په ده باندې دی. دوهم باندې حواله کړلې.نودا حواله جائز ده. لِأَنَّهُ أَقْدَرُ عَلَى الْقَضَاءِ ځکه چې په دې کې په ادا کاوه باندې زيات قدرت دې. فَإِنْ هَلَكَتْ بَرِءَ نوکه وديعت هلاك شی.نو محتال عليه (مودع) بری کيږی. لِتَقَيُّدِهَا بِهَا ځکه چې حواله هم دې مال امانت سره مقيد وو. فَإِنَّهُ مَا الْتَزَمَ الْأَدَاءَ إِلَّا مِنْهَا ځکه چې محتال عليه د ادا کاوه التزام نه ووکړې.خو په دې مال امانت سره.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړی بل سړی سره زر درهم امانت کيخودل. او دې دراهمو سره ئې دوهم کس په ده باندې حواله کړو.مثلاً خالد زر درهم حامد سره امانت کيخول.او په خالد باندې د شاهد زر درهم پور دی.نو خالد حامد ته اوونيل.کوم زر درهم چې زما ستا سره امانت دی.هغه شاهد ته ورکړه. ګويا خالد د شاهد لپاره حامد باندې د هغه زر درهمو حواله اوکړله.کوم زر درهم چې حامد سره امانت وو.نوداً حواله جائز ده.ځکه چې په دې صورت کې محتال عليه په ادا کاوه باندې زيات قدرت لری.په دې طريقه چې د محيل د اړخه پخپله د ادا کاوه مال موجود دې.اوهرکله چې د محيل د اړخه د ادا کاوه مال موجود دې.نو په محتال عليه باندې به اداکوم مشکل نه وی.او هرکله چې اداکول مشکل نشو.نو محتال عليه به په ادا کاوه باندې زيات قادر وی.دويمه خبره داچه وديعت (امانت) بذاته حاصل دې.د کسب محتاج نه دې.او قرضه کله کله د کسب (محنت مزدوری) هم محتاج کيږی.يعنی د وديعت مال خو محتال عليه سره بعينه موجود دې. ددې د حاصلولو او کسب کاوه هيڅ ارتيا نشته.اوکه د محيل په محتال عليه باندې قرضه وې.نو ډيرکرته ددې د کسب کاوه ارتيا راپيښيږی.ځکه چې



د پور موجود کيدل ضروری نه دی.بهرحال په ذکرشوې دواړو وجهو سره معلومه شوه.چه د محتال عليه په دې صورت کې ادا کاوه باندې قادر کيدل د حواله مقيده د جواز دليل دې.نو ثابته شوه.چه هرکله محتال عليه باندې حواله په څه مال سره مقيد وی.نو حواله جائز ده.خوکه د وديعت مال محتال عليه سره هلاك شو.نو محتال عليه به د حواله نه بری کيږی.ځکه چې حواله د مال وديعت سره مقيد دې.او حواله مال وديعت سره ځکه مقيد ده.چه محتال عليه په مال وديعت سره د ادا کاوه التزام کړې دې.نو حواله به هم دې مال وديعت سره متعلق وی.اود مال وديعت په هلاکيدلو سره حواله باطليږی.لکه څنګه چې زکاة په معين نصاب سره متعلق کيږی.او ددې معين نصاب هلاکيدلو سره زکاة هم ساقطيږی.هم دغه ډول ذکرشوی صورت کې چونکه حواله مال وديعت سره متعلق ده.په دې وجه د مال وديعت په هلاکيدلو سره حواله باطل او محتال عليه بری کيږی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ مُقَيَّدَةً بِالْمَغْصُوبِ په خلاف ددې چې کله حواله مال مغصوب سره مقيد وی. لِأَنَّ الْفَوَاتَ إِلَى خَلَفٍ كَلَا فَوَاتَ ځکه چې خليفه پريښول او فوت کيدل داسې دی.لکه نه فوت کيدل.

حل اللغة: ① الفوات-فوت کيدل-② خلف-خليفه-③ الرهن-ګاڼره-④ المغصوب-غصب شوې

تشريح:- خوکه حواله مال مغصوبه سره مقيد وی.مثلاً محيل محتال عليه ته اوونيل چه تا سره زما کوم مغصوب مال دې.هغه محتال له يعنی زما قرضخواه ته ورکړه.نو په دې صورت کې که مال مغصوب محتال عليه (غاصب) سره هلاك شو.نو دده څخه به حواله نه باطليږی.او محتال عليه يعنی غاصب به نه بری کيږی.بلکه شئ مغصوب که د ذوات الامثال څخې وو.نو حواله به ددې د مثل سره متعلق وی.اوکه د ذوات القيم څخې وو.نو حواله به ددې د قيمت سره متعلق وی.او په دې صورت کې حواله ځکه نه باطليږی.چه شئ مغصوبه اګرچه هلاکيدلو سره فوت شو.خو ددې خليفه (مثل يا قيمت) موجود دې.اود يو شئ په دې حالت کې فوت کيدل چې ددې خليفه موجود وی.هغې ته فوت کيدل نه وائی.بلکه هغه شئ حکماً پاته شمارلې کيږی.او هرکله چې هغه شئ حکماً پاته دې.نو حواله به هم نه باطليږی.اوهرکله چې حواله باطل نشوه.نو محتال عليه به هم نه بری کيږی.

وَقَدْ تَكُونُ الْحَوَالَةُ مُقَيَّدَةً بِالدَّيْنِ أَيْضًا او حواله کله کله دين سره هم مقيد کيږی. وَحُكْمُ الْمُقَيَّدَةِ فِي هَذِهِ الْجُمْلَةِ أَنْ لَا يَمْلِكَ الْمُحِيلُ مُطَالَبَةَ الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ او په دې ټولو صورتونوکې د حواله مقيده حکم دادې.چه محيل د محتال عليه نه د مطالبې نه مالك کيږی. لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُحْتَالِ عَلَى مِثَالِ الرَّهْنِ ځکه چې ذکرشوی مال سره د محتال له حق متعلق شوې دې.لکه څنګه چې د رهن مثال دې.

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه حواله کله کله دين سره هم مقيد کيږی.دين سره د مقيد کيدلو صورت دادې.چه په خالد باندې د حامد زر درهم پور دی.اودخالد په شاهد باندې زر درهم پور دی.نو خالد په شاهد باندې حواله اوکړله.چه زما کوم زر درهم په تا باندې دی.هغه حامد ته ورکړه.اوګورئ.دلته کې خالد يعنی محيل حواله هغه دين سره مقيد کړې ده.کوم دين چې د محيل محتال عليه يعنی په شاهد باندې دې. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه حواله عين سره مقيد وی.او هغه عين وديعت وی.يا غصب وی.يا دين سره مقيد وی.بهرحال محيل ته به د محتال عليه نه د هغه دين يا عين د مطالبې اختيار نه وی.کوم سره چې حواله مقيد کړې شوې ده.ځکه چې ذکرشوی مال سره د. محتال له حق متعلق شوې دې.لکه د رهن ايخودلو نه روسته شئ مرهونه سره د مرتهن حق متعلق کيږی.اود پور ادا کاوه نه وړاندې راهن ته د شئ مرهونه د مطالبې اختيار نه وی.دغه ډول په حواله مقيده کې هم محيل ته د محتال عليه نه د مطالبې اختيار نه پاتې کيږی.

وَإِنْ كَانَ أُسْوَةً لِلْغُرَمَاءِ بَعْدَ مَوْتِ الْمُحِيلِ اګرچه د محيل د مرګ نه روسته محتال له د قرضخواهانو برابر دې.

حل اللغة: ① اسوة -برابر-② الغرماء-جمع د غريم،قرضخواه-③ موت-مرګ -④ ياخذ-اخلی

تشريح:- په دې عبارت د حواله او رهن په حکم کې توپير بيانول مقصود دی. يعنی په حواله مقيده کې محيل اګرچه د محتال عليه نه د مطالبې اختيار نه لری.خود محيل د مرګ نه روسته محتال له دده قرضخواهانو سره برابر

حقدار دي.او راهن د مرګ نه روسته دده قرضخواه مرتهن سره برابر حقدار نه وي.بلکه د مرتهن حق به مقدم وي.ددې تفصيل دادې.چه هرکله حواله د څه عين يا دين سره مقيد وي.او په محيل باندې ډيره قرضه وي.او محيل مړشو.او هيڅ ترکه ئې پرې نخودله.سوا د هغه شئ نه کوم چې محتال له سره وو.يا کوم چې په محتال له باندې پور وو.نو کوم خلګ چې دده قرضخواه دی.د هغوی اود محتال له حال برابر دې.يعنی واړه خلګ په دې کي برابر حقدار دی.هيڅ چاته به په بل باندې تقدم حاصل نه وي.او پاتې شو د مرتهن حال،که مرتهن مړ شو.اوده بغير د شئ مرهونه نه هيڅ شئ پرې نخودلو.او دده نور قرضداری هم شته. نو شئ مرهونه سره به د مرتهن حق مقدم وي.تردې چې د شئ مرهونه څخه به وړاندې مرتهن خپل پور وصولوی. بياکه څه بچ شو.نود پاته قرضخواهانو حق به وي.

وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَوْبَقِيَ لَهُ مُطَالَبَتُهُ فَيَأْخُذُهُ مِنْهُ لَبَطَلَتْ الْحَوَالَةُ اودا څکه که د محتال له لپاره دې مال سره مطالبه پاته کيدې.او محتال له دا اخستلو.نو حواله به باطل کيدله. وَهِيَ حَقُّ الْمُحْتَالِ حالانکه حواله د محتال له حق دې.

تشريح:- په دې عبارت سره د يوې خبرې وضاحت شوې دې.چه په حواله مقيده کي محيل د محتال عليه نه د مطالبې مالك نه پاتې کيږی.څکه که د محيل لپاره دې عين يا دين سره مطالبه پاته کيدله.او محيل د محتال عليه نه اخستله.نو حواله به باطل کيدله.څکه چې د کوم شئ سره حواله مقيد وه.هرکله چې دا پاتې نشوه.نو حواله به هم باطل شوه.حالانکه حواله د محتال له حق دې.او محيل ته د محتال عليه حق باطلولو اختيار نه وي.نو هرکله چې محيل ته د محتال عليه حق باطلولو اختيار نشته.نو ده ته به د ذکرشوی مال د مطالبې حق هم حاصل نه وي.

بِخِلَافِ الْمُطْلَقَةِ په خلاف د حواله مطلقه. لِأَنَّهُ لَاتَعَلُّقَ لِحَقِّهِ بِهِ بَلْ بِذِمَّتِهِ څکه چې د محتال له هيڅ حق دې مال سره متعلق نه دې.بلکه د محتال عليه ذمې سره متعلق دې. فَلَاتَبْطُلُ الْحَوَالَةُ بِأَخْذِ مَاعَلَيْهِ أَوْعِنْدَهُ نوددې مال وصولولو سره کوم چې په محتال عليه باندې دې.يا کوم چې دده سره دې.حوال نه باطليږی.

تشريح:- البته که حواله مطلقه وي.نو محيل ته د محتال عليه نه خپل مال دين يا وديعت ( امانت) وغيره د مطالبې کاوه اختيار دې.څکه چې د محتال له هيڅ حق دې مال سره متعلق نه دې.بلکه د محتال عليه ذمه سره متعلق دې.نوکه محيل د محتال عليه نه هغه مال واخستلو.کوم چې محتال عليه باندې دين وو.يا محتال عليه سره د وديعت يا غصب په طور وو.نو په دې سره به حواله نه باطليږی.

**د سفاتج تعريف**

قَالَ وَيُكْرَهُ السَّفَاتِجُ فرمائی.او سفاتج ( هنډی) مکروه ده. وَهِيَ پور اسْتَفَادَ بِهِ الْمُ پور سُقُوطَ خَطَرِ الطَّرِيقِ او سفتجه داسې قرضه ده.د کوم په ذريعه چې قرضه ورکونکی د لارې خطره لرې کوی.

حل اللغة: ① استفاد -حاصل شوې وي-② سقوط-ساقط کيدل-③ خطر-ويره-④ الطريق-لار

تشريح:- د سفاتج واحد،، سُفتجه،، د سين ضمه اود تاء فتحه ده.دا لفظ د فارسۍ نه معرب دې.ددې اصل سُفته دې.د محکم شئ لپاره وئيلې شی.دې ته هنډی وئيلې شی.د سُفتجه صورت دادې.چه حامدخالد ته په دې شرط باندې مال پور ورکړو.چه خالد دده لپاره يو تحرير فلانی ښار ته اوليکی.مثلاً حامد خالد ته په ديوبند کي مال په دې شرط باندې پور ورکړو.چه خالد د حامد لپاره يو تحرير بمبئ ته اوليکی.کوم ځاني کي چې د خالد کاروبار دې.چه حامد تحرير اوښائی.اوهم دومره قدرې مال په بمبئ کي وصول کړی.بهرحال سفتجه مکروه ده.څکه چې قرضه ورکونکی قرضه ورکړله.اود لارې خطره ئې لرې کړله.يعنی د ديېبنور نه کراچئ ته په رقم اوړلوکي چې کوم خطرات وو.د هنډی په صورت کي هغه خطرات لرې شو.

وَهٰذَا نَوْعُ نَفْعٍ اُسْتُفِيدَ بِهِ اودا يو ډول نفع ده.کومه چې د پور په ذريعه حاصلولې شی. وَقَدْ نَهَى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَنْ پور جَرَّ نَفْعًا



(١)حالانکه رسول الله ﷺ دداسې پور نه منع فرمائيلې ده.کوم چې نفع راکاږی.

حل اللغة: ① استفيد -حاصل شوې-② نهى -منع کړې -③ جر-راکاږی-④ نفع-فائده

تشريح:- او ددې خطراتو لرې کيدل هم د پور ورکونکی لپاره يوه نفع ده.اوداسې قرضه چې په هغې کي د قرضه ورکونکی لپاره نفع وي.نا جائز ده.څکه چې رسول الله ﷺ د داسې پور نه منع فرمائيلې ده.کومه چې په نفع باندې مشتمل وي.نو معلومه شوه.چه سُفتجه ( هنډی) کم ازکم مکروه ده.

# کتاب ادب القاضي

( دا) کتاب د ادب القاضي ( په بيان کي ) دې.

تشريح:- چونکه په بيوع او کفالاتو وغيره معاملاتوکي اکثر جګړې پيدا کيږی.په دې وجه ددې نه روسته ئې داسې شئ بيان کړو.کوم چې منازعات ختمونکې دې.او هغه قضاء ده.

معنى القضاء لغة وشرعاً ۞ د قضاء لغوی معنی لازمول دی.او په شريعت کي قضاء هغه قول دې.کوم چې په ولايت عامه سره صادر شی.يعنی کوم کس ته چې ولايت عامه حاصل دې.د هغه نه صادر شی.او څوك چې دده د قول مخاطب وي.په هغه لازم شی.

المراد من الادب۞ د ادب معنی ښائسته اخلاق او ښه خصلتونه دی.اودلته ترې داسې امور مراد دی.کوم چې شرعاً محمود وي.قاضی هغه لازم اونيسی.مثلاً انصاف عام کول، ظلم ختمول، د شريعت په حدودو او سنتو باندې قائم پاتې کيدل.

ثبوت القضاء بادلة الشرع۞ ①قضاء په کتاب الله، سره ثابته ده لکه د الله تعالى ارشاد دې. ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ﴾ ② اود نبی ﷺ په سنت سره هم ثابته ده حضرت علی او معاذ رضي الله عنهما چې کله دا دواړه نبی قاضيان جوړ کړل او خپل د قضاءت مقام ته ئې ليږلو نو دا ئې ورته فرمائيلی وو ﴿بم تقضی يا معاذ؟ فقال بكتاب الله قال فإن لم تجد قال بسنة رسول الله ﷺ قال فإن لم تجد قال اجتهد برأيي قال الحمد لله الذي وفق رسول رسول الله لما يرضى رسول الله﴾ ③ د قضاء په مشروعيت باندې د مسلمانانو اجماع هم ثابت ده.④ اود عقل په ذريعه داسې ثابت ده.چه په قضاء بالحق کي به عدل ښکاره کيږی.د ظالم ظلم به لرې کيږی.او ظالم ته به انصاف ملاويږی.اودا داسې شيان دی.چه دې ارخ ته د هر عاقل عقل دعوت ورکوی.نو معلومه شوه.چه عقلاً هم قضاء ثابت ده.

**د قضاء د عهدې لپاره شرائط**

قَالَ وَلَاتَصِحُّ وِلَايَةُ الْقَاضِي ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه د قاضی متولی کيدل نه صحيح کيږی. حَتَّى يَجْتَمِعَ فِي الْمُوَلَّى شَرَائِطُ الشَّهَادَةِ تردې چې کوم کس متولی کړې شی.چه په ده کي د ګواهئ شرطونه موجود وي. وَيَكُونَ مِنْ أَهْلِ الْاِجْتِهَادِ اودې د اهل اجتهاد ځنې هم وي. أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ حُكْمَ الْقَضَاءِ يُسْتَقَى مِنْ حُكْمِ الشَّهَادَةِ بهرحال اول خو څکه،چه حکم قضاء هم په حکم د شهادت سره حاصليږی. لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ، څکه چې په دې دواړوکي هريو د ولايت د قبيلې ځنې دې. فَكُلُّ مَنْ كَانَ أَهْلًا لِلشَّهَادَةِ يَكُونُ أَهْلًا لِلْقَضَاءِ نو کوم چې د شهادت اهل وي.هغه به د قضاء اهل هم وي. وَمَا يُشْتَرَطُ لِأَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ يُشْتَرَطُ لِأَهْلِيَّةِ الْقَضَاءِ. اوکوم شئ چې د شهادت د اهليت لپاره شرط دې.هغه د قضاء د اهليت لپاره هم شرط دې.

حل اللغة: ① ولاية-متولی کيدل-② يجتمع-جمع کيږی-③ يستقى-حاصليږی-④ يشترط-شرط کولې شی

تشريح:- ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه د يوسړی قاضی جوړول به هغه وخت جائز وي.چه کله په ده کي د

(١) من حديث على رضي الله عنه أخرجه عبدالحق فى أحكامه وأبوالجهم فى ،،جزئه المعروف،،وابن عدى فى الكامل (١/٢٦٨)_

شهادت واړه شرطونه موجود شي.مثلا مسلمان وي، بالغ وي، عاقل وي، ازاد وي،او نابينا (ړوند) او محدود في القذف نه وي.او غوره داده. چې عادل وي، عفيف (پاكدامن) وي، عالم بالسنة وي.اود خان نه د مخكنو قاضيانو په طريقه وي.دويمه خبره داده.چه كوم كس ته د قضاء عهده سپارلې كيږي.دې د اجتهاد د اهل ځني وي.حاصل دا چې د قاضي لپاره د شهادت او اجتهاد اهل كيدل ضروري دي.په قاضي كې د شهادت شرطونه موجود كيدل ځكه ضروري دي.چه حكم د قضاء د حكم شهادت نه مستفاد دي. ځكه چې قضاء او شهادت دواړه د باب ولايت ځني دي.او ولايت وائي،، تنفيذ القول على الغير،، ته.نو لكه څنګه چې شاهد خپل قول په غير باندې نافذ كوي.دغه ډول قاضي هم خپل قول غير باندې نافذ كوي.او ولايت د قضاء د ولايت د شهادت نه عام او اكمل دي.په دې وجه د قضاء د ولايت لپاره د شهادت شرائط كيدل په درجه اولى ضروري دي.اوكوم كس چې د شهادت اهل وي.هغه قاضي هم كيدلې شي.اود شهادت اهليت لپاره چې كوم شيان شرط دي.د قضاء اهليت لپاره هم شرط دي.

وَالْفَاسِقُ أَهْلٌ لِلْقَضَاءِ او فاسق د قضاء اهل دې. حَتَّى لَوْ قُلِّدَ يَصِحُّ، تردې كه دې قاضي جوړ كړې شو.نو صحيح دي. إِلَّا أَنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يُقَلَّدَ كَمَا فِي حُكْمِ الشَّهَادَةِ خود فاسق قاضي جوړول مناسب نه دي.لكه څنګه چې د شهادت په حكم كې دي. فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يَقْبَلَ الْقَاضِي شَهَادَتَهُ،ځكه چې قاضي له د فاسق ګواهي قبلول مناسب نه دي. وَلَوْ قَبِلَ جَازَ عِنْدَنَا اوكه د فاسق ګواهي ئې قبوله كړله.نو زموږ په نيز جائز ده.

حل اللغة: ① اهل-قابل \ لائق-② قلد-جوړ كړې شو-③ ينبغي-مناسب دي-④ الشهادة-ګواهي

تشريح:- هركله چې فاسق چونكه د شهادت اهل دې.ځكه به دې د قاضي جوړيدلو هم اهل وي.تردې كه فاسق قاضي جوړ كړې شو.نو جائز دي.خو دده قاضي جوړول مناسب نه دي.لكه څنګه چې د قاضي لپاره د فاسق ګواهي قبلول مناسب نه دي.خوكه د فاسق ګواهي قبول كړې شوه.نو زموږ په نيز جائز ده.ځكه چې عدالت د شهادت په شرائطو كې نه دي.بلكه د شهادت په مناسباتو كې دي.

وَلَوْ كَانَ الْقَاضِي عَدْلًا فَفَسَقَ بِأَخْذِ الرِّشْوَةِ أَوْ غَيْرِهِ لَا يَنْعَزِلُ وكه قاضي عادل وي.خود رشوت اخستلو په وجه يا ددې نه علاوه په څه وجه فاسق شو.نو دې به معزول نه وي. وَيَسْتَحِقُّ الْعَزْلَ اود عزل مستحق به وي. وَهَذَا هُوَ ظَاهِرُ الْمَذْهَبِ وَعَلَيْهِ مَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللَّهُ (1) اوهم دا ظاهر مذهب دې.او په دې باندې زموږ مشائخ ﷭ دي.

حل اللغة: ① عدلا-عادل-② فسق-فاسق شو-③ الاخذ- اخستل-④ العزل-معزول كيدل

تشريح:- اوكه قاضي عادل وي.خود رشوت اخستلو، يا شراب څښلو ،يا د زنا وغيره وجه فاسق شو.نو معزول به نه وي.البته د معزولولو مستحق كيږي.او تركومه پورې چې معزول نكړې شي.تر هغه وخته پورې به دده جاري شوي احكام نافذ وي.البته كه د قاضي مقرر كاوه په وخت بادشاه شرط لګولې وي.چه د حرام فعل ارتكاب كاوه سره به معزول وي.نود حرام فعل ارتكاب كاوه سره به معزول كيږي.هم دا ظاهر مذهب دې.اوهم په دې باندې زموږ د عامو مشائخو اعتماد دي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: الْفَاسِقُ لَا يَجُوزُ قَضَاؤُهُ كَمَا لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عِنْدَهُ،اود امام شافعي ﷫ په نيز به دده شهادت نشي قبلولې. وَعَنْ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ رَحِمَهُمُ اللَّهُ فِي النَّوَادِرِ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ قَضَاؤُهُ او زموږ د علماءِ ثلاثه نه په نوادر كې روايت دې.چه د فاسق قضاء جائز نه ده.

حل اللغة: ① القضاء -فيصله-② لاتقبل-نه قبليږي-③ النوادر-نادر روايات -④ يجوز- جائزده

(1) القول الراجح هوهذا ظاهر الرواية كذا في فتح القدير(۳۵۸\۶) وردالمحتار(۳۳۹\۴) والبحر الرائق (۲۶۱\۶) نقلاً عن القول الراجح (۱۰۵\۲)-



تشريح:- حضرت امام شافعي ﷫ فرمائي.چه د فاسق سړي قاضي جوړول جائز نه دي.لكه څنګه چې ددوي په نيز دده شهادت نشي قبلولې.هم دا د امام مالك اود امام احمد ﷮ قول دې.او زموږ درې واړه عالمانو د نوادر يو روايت هم دادې.چه فاسق قاضي جوړول جائز نه دي.

وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللَّهُ: إِذَا قُلِّدَ الْفَاسِقُ ابْتِدَاءً يَصِحُّ،او بعض مشائخ ﷭ فرمائي.چه كله فاسق په ابتداء كې فاسق جوړ كړې شو.نو صحيح دي. وَلَوْ قُلِّدَ وَهُوَ عَدْلٌ يَنْعَزِلُ بِالْفِسْقِ اوكه د عادل كيدلو په حالت كې قاضي جوړ كړې شو.نود فسق په وجه به معزول كولې شي. لِأَنَّ الْمُقَلِّدَ اعْتَمَدَ عَدَالَتَهُ فَلَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِتَقْلِيدِهِ دُونَهَا ځكه چې مقلد (قاضي جوړونكي) دده په عادل كيدلو باندې اعتماد كړې وو.نود عدالت نه بغير به دده په قاضي جوړولو باندې راضي نه وي.

حل اللغة: ① مشائخ-عالمان-② ابتداء -د سر نه -③ اعتمد-اعتماد كړې دې-④ راضي-راضي \ خوشحاله

تشريح:- او بعض مشائخ وائي.كه فاسق قاضي جوړ كړې شو.نو ټيك ده.اوكه عادل قاضي جوړ كړې شو.خو روسته دې فاسق شو.نود فسق په وجه به معزول كيږي.ځكه چې قاضي جوړونكي د قاضي جوړولو په سلسله كې دده په عدالت باندې اعتماد كړې وو.نود عدالت نه بغير به دده په قاضي جوړولو باندې به نه راضي كيږي.ګويا قاضي جوړول د عدالت د بقاء سره مشروط دي.اوهركله چې قاضي جوړول د عدالت بقاء سره مشروط شو.نود عدالت په فوت كيدلو سره به د قضاء عهده هم فوت كيږي.

؟ د بعض مشائخو په دې قول باندې يو اعتراض .ې.هغه داچه د فقهاؤ مسلمه قاعده ده.چه بقاء د ابتداء په مقابله كې سهل او آسانه وي.لكه مثلاً نكاح د ګواهانو نه بغير پاته كيږي.خو ابتداء نه صحيح كيږي.خود فاسق قاضي جوړول جائز كيدل،او عادل كه قاضي جوړ كړې شو.او بيا دې فاسق شو.نو ددې پيدا شوې فسق په وجه دده معزول كيدل ددې قاعدې منافي دي؟ ددې ځواب دادې.چه په ذكرشوې مسئله كې قاضي جوړول په عدالت باندې معلق وو.او قضاء او امارات په شرط باندې معلق كول جائز هم دي.لكه نقل دي.چه رسول الله ﷺ يو لښكر اوليګلو.او په دوى ئې زيد بن حارث﵁ امر جوړ كړو.او بيا نبي كريم ﷺ اوفرمائيل. چې «إن قتل زيد فجعفر أميركم وإن قتل جعفر فعبدالله بن رواحه أميركم......» يعني كه زيد﵁ قتل كړې شو.نو جعفر﵁ ستاسو امير دې.او كه جعفر﵁ قتل كړې شو.نو عبدالله بن رواحه﵁ ستاسو امير دې.او ګورئ. د جعفر﵁ امارت د زيد په قتل باندې معلق دې.اود عبدالله بن رواحه﵁ امارت د جعفر﵁ په قتل باندې معلق دې.نو معلومه شوه.چه قضاء او امارت په شرط باندې معلق كول جائز دي.او په ذكرشوې مسئله كې قضاء په عدالت باندې معلق ده.اوچونكه د معلق عليه په فوت كيدلو سره شئ معلق فوت كيږي.په دې وجه د عدالت په فوت كيدلو سره به د قضاء عهده فوت كيږي.يعني قاضي به معزول كيږي.

وَهَلْ يَصْلُحُ الْفَاسِقُ مُفْتِيًا؟ او آيا فاسق سړې مفتي كيداې شي؟ قِيلَ لَا (1) لِأَنَّهُ مِنْ أُمُورِ الدِّينِ ونيلى شوي دي.چه نشي جوړيدې.ځكه چې فتوى د ديني امورو ځني ده. وَخَبَرُهُ غَيْرُ مَقْبُولٍ فِي الدِّيَانَاتِ،او په ديني امورو كې د فاسق خبر غير مقبول دې. وَقِيلَ يَصْلُحُ او ونيلى شوي دي.چه د فاسق مفتي كيدل صحيح دي. لِأَنَّهُ يَجْتَهِدُ كُلَّ الْجُهْدِ فِي إِصَابَةِ الْحَقِّ حِذَارَ النِّسْبَةِ إِلَى الْخَطَإِ ځكه چې غلطئ اړخ ته منسوب كيدلو يرې څخه به فاسق (د بچ كيدلو) كوښښ كوي.

حل اللغة: ① يصلح-صلاحيت لري-② مفتيا-چه مفتي جوړ شي-③ يجتهد - كوښښ كوي-④ اصابة -رسيدل

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ په سواليه اندازكې فرمائي.چه فاسق سړې مفتي كيدلې شي او كه نشي كيدلې؟ د بعض حضراتو رائې داده. چې فاسق سړې مفتي نشي كيدلې.ځكه چې افتاء يو ديني امر دې.او په ديني امورو كې د فاسق خبر نه قبليږي.كه فاسقانو اووښل.مونږه د اختر مباشت اوليدله.نو ددوى په قول به اعتماد نشي

(1) القول الراجح هوهذا قول المانعين كذا في ردالمحتار(۳۳۵\۴) والبحرائق (۲۶۳\۶) نقلاً عن القول الراجح (۱۰۶\۲)-

کولي.اود بعض حضراتو رائې داده.چه د فاسق سړی مفتي کيدل جائز دی.ځکه چې په خلګو کي د بدنام کيدلو په وجه به دې ددې کوښښ کوی.چه صحيح فتوی اوليکي.او غلطۍ اړخ ته د منسوب کيدلو نه او يريږی.

## د قاضي لپاره د اجتهاد شرطيت

وَأَمَّا الثَّانِي فَالصَّحِيحُ او پاتې شو د دوهم شرط بيان،نو صحيح داده. أَنَّ أَهْلِيَّةَ الإِجْتِهَادِ شَرْطُ الأَوْلَوِيَّةِ.چې د اجتهاد د لياقت د اولويت (غوره والی) شرط دادې. فَأَمَّا تَقْلِيدُ الجَاهِلِ فَصَحِيحٌ عِنْدَنَا چې بهرحال جاهل قاضي جوړول زموږ په نيز صحيح دی.

حل اللغة: ① اهلية-قابليت \ لياقت-② شرط-شرط-③ الاولوية-افضليت-④ رحمة-مهرباني

تشريح:- په دې عبارت کي د دوهم شرط يعنی د اجتهاد دشرط بيان دې.د قدوری د عبارت ﴿ولا تصح﴾ نه معلوميږی.چه د اجتهاد شرط، شرط صحت دې.يعنی د قوت اجتهاد نه بغير څوك قاضي جوړول جائز نه دی.خو صحيح خبره داده.چه د اجتهاد شرط اولويت ( غوره والی) دې.يعنی غوره داده.چه قاضي مجتهد وی. زموږ په نيز جاهل يعنی غيرمجتهد قاضي جوړول جائز دی.

خِلَافًا لِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ،وَهُوَ يَقُولُ: إِنَّ الأَمْرَ بِالقَضَاءِ يَسْتَدْعِي القُدْرَةَ عَلَيْهِ اود علم نه بغير قدرت نه وی. وَلَا قُدْرَةَ دُونَ العِلْمِ اود علم نه بغير قدرت نه وی.اود علم نه بغير قدرت نه وی.

حل اللغة: ① يستدعي-تقاضا کوی-② القدرة-قوت \طاقت-③ دون-بغير-④ الامر-حکم

تشريح:- د امام شافعي ﷫ په نيز جاهل قاضي جوړول جائز نه دی. د امام شافعي ﷫ دليل دادې.چه د قاضي حکم ددې خبرې تقاضا کوی.چه قاضي په دې باندې قادر هم وی. او قدرت د علم نه بغير نشي کيدلی.ځکه چې جاهل د حق او باطل په منځ کي توپير کاوه باندې قادر نه وی. نومعلومه شوه.چه د حکم قضاء لپاره علم کيدل ضروری دې.اوهرکله چې د قاضي جوړولو لپاره دده عالم يا مجتهد کيدل ضروری دی.نو معلومه شوه.چه جاهل يعنی غيرمجتهد قاضي جوړول جائز نه دی.

وَلَنَا أَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يَقْضِيَ بِفَتْوَى غَيْرِهِ او زموږ دليل دادې.چه د جاهل قاضي لپاره دا ممکن ده.چه دې د بل په فتوی باندې فيصله اوکړی. وَمَقْصُودُ القَضَاءِ يَحْصُلُ بِهِ اود قضاء مقصود په دې سره حاصليږی. وَهُوَ إِيصَالُ الحَقِّ إِلَى مُسْتَحِقِّهِ او هغه دا دې.چه حق ددې خپل مستحق ته اورسيږی.

حل اللغة: ① يمكنه-ممکن ده ده لره-② يقضي-چه فيصله اوکړی-③ يحصل-حاصليږی-④ ايصال-رسول\ورکول

تشريح:- دليل دادې.چه د قضاء مقصود دادې.چه حقدار ته دده حق اورسی.اودا خبره لکه څنګه چې هغه وخت ممکن ده.کله چې قاضي مجتهد وی.او پخپله اجتهاد اوکړی.دغه ډول هغه وخت هم ممکن ده.کله چې قاضي جاهل يعنی غيرمجتهد وی.ځکه چې په دې صورت کي د بل يو مجتهد او عالم نه فتوی معلومولې شي.او فيصله کولې شی.زموږ تائيد ددې نه هم کيږی.چه هرکله رسول الله ﷺ حضرت علی ؓ د يمن قاضي جوړ کړو. او وې ليکلو.نو دغه وخت حضرت علی ؓ بالکل نوعمر (هلك) وو.اود اجتهال اهل ځنې نه وو.په مسنداحمد کي پخپله د حضرت علی کرم الله وجهه نه نقل دی. ﴿قال أنفذني رسول الله ﷺ إلى اليمن وأنا حديث السن فقلت تنفذني إلى قوم يكون بينهم أحداث ولا علم لي بالقضاء فقال ﷺ إن الله تعالى سيهدي لسانك ويثبت قلبك﴾ يعنی رسول الله ﷺ زه د يمن ګورنر جوړ کړم.او وې دی.حالانکه ما سره د قضاء علم هم نشته.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.الله تعالى به ستا ژبې ته هدايت ورکړی.او ستا زړه به ثابت اوساتی.ددې حديث نه معلومه شوه.چه د قاضي لپاره مجتهد کيدل د قضاء د جواز شرط نه دې.بلکه زيات نه زيات د اولويت شرط کيدلې شی.



وَيَنْبَغِي لِلْمُقَلِّدِ أَنْ يَخْتَارَ مَنْ هُوَ الأَقْدَرُ وَالأَوْلَى اود قاضي جوړونکی لپاره مناسب دادی.چه زيات قدرت والا او غوره کس منتخب کړی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ قَلَّدَ إِنْسَانًا عَمَلًا وَفِي رَعِيَّتِهِ مَنْ هُوَ أَوْلَى مِنْهُ ځکه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی.که يو کس بل کس ته کوم عمل اوسپارلو.حالانکه دده په رعيت کي دده نه غوره سړی موجود دې. فَقَدْ خَانَ اللهَ وَرَسُولَهُ وَجَمَاعَةَ المُسْلِمِينَ}(۱) نوده د الله او دده رسول اود مسلمانانو د جماعت خيانت اوکړو.

حل اللغة: ① المقلد-تقليد کونکې-② ان يختار-چه غوره کړی-③ الرعية-قوم-④ خان-خيانت اوکړو

تشريح:- د هدايه عبارت ﴿وينبغي للمقلِّد﴾ ، بکسر اللام، کي د مقلد نه مراد هغه سړی دې.چه ده ته ولايت د تقليد يعنی د قاضي وغيره مقررولو ولايت حاصل وی.لکه خليفة المسلمين يا د خليفه مقررکړې شوې بادشاه،ددې عبارت حاصل دادې.چه چاته الله تعالى واړه اختيارات ورکړی وی.يعنی خليفه او امير المؤمنين يا بادشاه، اوس که دې څوك قاضي جوړول اوغواړی.نود داسې سړی انتخاب دې اوکړی.چه په فيصله ورکاوه باندې قادر وی.او پخپل علم، دين او ديانت او په پاکدامنۍ او قوت کي د نورو خلګو نه افضل او غوره وی.ځکه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی.که يو صاحب اقتدار( حاکم ، بادشاه) کوم انسان ته څه کار اوسپارلو.حالانکه دده په رعايا ( رعيت) کي دده نه غوره خلګ موجود وی.نو دې صاحب اقتدار د الله تعالى،د رسول ﷺ او د مسلمانانو د جماعت خيانت اوکړو.اود ابن عباس ؓ حديث دې. ﴿قال رسول الله ﷺ من تولى من أمر المسلمين شيئاً فاستعمل عليهم رجلاً وهو يعلم أن فيهم من هو أولى بذلك وأعلم منه بكتاب الله وبسنة رسول الله ﷺ فقد خان الله ورسوله وجماعة المسلمين﴾ يعنی کوم سړی چې د مسلمانانو په کارونو کي د کوم شي متولي شو.بيا په دوی باندې څوك سړی عامل مقرر شو.او دې خبردې چه په خلګو کي دده نه غوره او په قرآن او سنت باندې دده نه زيات پوهيدونکی خلګ موجود دی.نو ده الله تعالى رسول الله ﷺ او مسلمانانو سره خيانت اوکړو.

وَفِي حَدِّ الإِجْتِهَادِ كَلَامٌ عُرِفَ فِي أُصُولِ الفِقْهِ اود اجتهاد په تعريف کي کلام دې.کوم چې په اصول فقه کي معلوم شوې دې. وَحَاصِلُهُ أَنْ يَكُونَ صَاحِبَ حَدِيثٍ اوددې حاصل دا دې.چه يا خوداسې صاحب حديث وی. لَهُ مَعْرِفَةٌ بِالفِقْهِ چې ورته د فقه معرفت حاصل وی. لِيَعْرِفَ مَعَانِيَ الآثَارِ چې د آثارو په معانيو باندېګ پوهه‌ای أَوْ صَاحِبَ فِقْهٍ لَهُ مَعْرِفَةٌ بِالحَدِيثِ اويا فقيه وی چې ده په حديثو باندېګ پوهه وی لِئَلَّا يَشْتَغِلَ بِالقِيَاسِ فِي المَنْصُوصِ عَلَيْهِ چې دې په منصوص عليه حکم کي په قياس کاوه کي بوخت نشی.

حل اللغة: ① حد-تعريف-② کلام-تفصيل-③ معرفة-پيژند ګلو-④ لئن لايشغل-مشغوله نشی

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ فرمائی.چه د اجتهاد د تفصيلي تعريف مقام د اصول فقه کتابونه دی.خو اجمالاً دومره عرض دې.چه د مجتهد دوې (دوه) تعريفونه ذکر دی.① يودا چې مجتهد داسې صاحب حديث وی.چه ده ته فقه سره هم خاص مناسبت وی.چه هغه معانی اوپيژنی.کوم چې د هغه احکامو مدار دی.په کوم چې د حديث الفاظ دلالت کوی.② دوهم داچه فقيه وی.چه ده ته د حديثو علم هم حاصل وی.چه په حکم منصوص عليه کي قياس اونکړی.ځکه چې په کومه مسئله کي نص موجود وی.په هغې کي قياس پريخودلې شی.حاصل داچه مجتهد صاحب حديث او صاحب فقه دواړه وی.د صاحب حديث کيدلو په وجه به د نص په مقابله کي د قياس کاوه نه ځان بچ کوی.اود صاحب فقه کيدلو په وجه به د احاديثو هغه معانی پيژنی.کوم چې د احکامو مدار دی.فرق دومره دې.چه د ړومبی تعريف په اعتبار سره د حديث علم غالب اود فقه علم مغلوب دې.اود دوهم تعريف په اعتبار سره ددې برعکس دې.

(۱) من حديث ابن عباس ؓ أخرجه الحاكم في المستدرك (۹۲/٤) وابن عدي في الكامل (۳۵۲/۲)_

وَقِيلَ او وئيلې شوي دي. أَنْ يَكُونَ مَعَ ذٰلِكَ صَاحِبَ قَرِيحَةٍ چې په ذکرشوي دواړو خبرو کې سره سره خوش طبيعته هم وي. يَعْرِفُ بِهَا عَادَاتِ النَّاسِ چې ددې په ذريعه د خلګو عادتونه او پيژني. لِأَنَّ مِنَ الْأَحْكَامِ مَا يَبْتَنِي عَلَيْهَا ځکه چې بعض احکام هم په دې باندې مبني وي.

حل اللغة: ① قريحة-خوش مزاجه-② عادات-عادتونه-③ الناس-خلق-④ يبتني-بناء کيږي

تشريح:- علامه مرغيناني ﷬ فرمائي.چه په ذکرشوي دواړه تعريفونوکې هريو سره دا هم ضروري ده.چه مجتهد صاحب طبيعت او مزاج شناس وي.د تشکيکات مکدره (خرابو خيالاتو) نه دده زړه صفا وي.په عقل باندې د وهمي قوت غلبه نه وي. يعنې شکي مزاجه نه وي او زموږ په زمانه کې دا هم ضروري ده.چه په غوړونو کمزورۍ نه وي.دا شيان په دې وجه ضروري ګرځولې شوي دي.چه بعض احکام د خلګو په عادتونو باندې مبني دي.نو ترکومه پورې چې مجتهد او قاضي د خلګو د عادتونو نه خبر نه وي.اود خلګو مزاج نه پيژني.تر هغه وخته پورې به په بصيرت سره فيصله کول مشکل وي.

## د قضاء عهده قبلولو حکم

قَالَ وَلَا بَأْسَ بِالدُّخُولِ فِي الْقَضَاءِ لِمَنْ يَثِقُ بِنَفْسِهِ فرمائي.اود هغه کس لپاره د قضاء عهده قبلولوکې هيڅ باک نشته.کوم چې پخپل ځان باندې اعتماد لري. أَنْ يُؤَدِّيَ فَرْضَهُ چې دې به د قضاء فريضه اداکوي.

حل اللغة: ① لاباس-پراه نشته-② بالدخول-په داخليدو-③ يثق-چه اعتماد ئې وي-④ ان يؤدي-چه ادا به کړي

تشريح:- ابو الحسين قدوري ﷬ فرمائي.که يوسړي ته پخپل ځان باندې دا اعتماد وي.چه دې به د قضاء فريضه سرته اورسوي.يعنې د حق مطابق فيصله کولې شي.نو دده لپاره د قضاء عهده قبلولوکې هيڅ حرج نشته.

لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ تَقَلَّدُوهُ (دوه) دليل دا دې چې صحابه کرامو ﷺ د قضاء عهده قبول کړې ده. وَكَفَى بِهِمْ قُدْوَةً او ددوي اقتداء زموږ لپاره کافي ده.

حل اللغة: ① تقلدو-قبول کړې وه -② کفی-کافي ده\بس دی-③ قدوة-د اقتداء دپاره-④ الصحابة-صحابه کرام

تشريح:- دليل دادې.چه صحابه کرامو ﷺ د قضاء عهده قبول کړې ده.لکه چې په عهد رسالت کې د حضرت معاذ ﷺ قاضي کيدل معروف او مشهور دې.او حضرت علي ﷺ پخپله فرمائي. «بعثني رسول الله ﷺ الى اليمن قاضياً» الحديث دغه ډول نور احاديث هم د قضاء په قبلولوکې راغلي دي.موږ صرف په دې باندې اکتفاء اوکړله......

وَلِأَنَّهُ فَرْضُ كِفَايَةٍ اوځکه چې قاضي کيدل فرض کفايه دي. لِكَوْنِهِ أَمْرًا بِالْمَعْرُوفِ ځکه چې دا امربالمعروف دې.

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه قاضي چونکه امر بالمعروف نهي عن المنکر کوي.په دې وجه قاضي کيدل فرض علی الکفايه دي.که څوک هم دا عهده قبول نکړي.نو واړه به ګناهګار وي.دلته کې د قدوري په عبارت باندې اشکال کيداې شي.هغه دا چې قاضي کيدل فرض علی الکفايه دي.اود فرض علی الکفايه اولی مرتبه ندب او استحباب ده.نو ددې قبلول به کم ازکم مستحب وي.حالانکه قدوري ﷬ د «لاباس» لفظ ذکرکړې دې.چه دا په اباحت باندې دلالت کوي؟ ددې ځواب دادې.چه د قضاء په عهده کې چونکه ډير لوې خطرات دي.او هرسړې دا پوره طور باندې نشي برداشت کولې.په دې وجه مصنف ﷬ د «لاباس» لفظ وئيلو سره جواز بيان کړې دې.

## د قضاء عهده قبلول د چا لپاره مکروه ده؟

قَالَ وَيُكْرَهُ الدُّخُولُ فِيهِ لِمَنْ يَخَافُ الْعَجْزَ عَنْهُ فرمائي.اوکوم کس چې د قضاء بالحق نه د عاجزۍ يره لري. وَلَا يَأْمَنُ عَلَى نَفْسِهِ الْحَيْفَ فِيهِ او پخپل ځان باندې په حکم قضاء کښې د ظلم نه مطمئن نه وي.نو دده په قضاء کې داخليدل مکروه دي. كَيْ لَا يَصِيرَ شَرْطًا لِمُبَاشَرَتِهِ الْقَبِيحَ چې دده دا داخليدل د امرقبيح مرتکب کيدلو وسيله نه وي.



حل اللغة: ① يخاف-ويريږي-② يامن-په امن وي -③ الحيف-ظلم-④ مباشر-ګډون کونکې

تشريح:- ابو الحسين قدوري ﷬ فرمائي.که يو سړي ته د قضاء بالحق نه د عجز خطره وي.اود ظلم او بې انصافۍ نه پخپل ځان باندې مطمئن نه وي.نود داسې سړي لپاره د قضاء عهده قبلول مکروه تحريمي ده.ددې لپاره چې د قضاء عهده قبلول د قبيح (ناکاره) امر يعنې د ظلم او بې انصافۍ کاوه وسيله نه وي.

وَكَرِهَ بَعْضُهُمُ الدُّخُولَ فِيهِ او بعض عالمانو مطلقاً د قضاء په عهده کې داخليدل مکروه ګرځولې دي. مُخْتَارًا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ "{مَنْ جُعِلَ عَلَى الْقَضَاءِ فَكَأَنَّمَا ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ}" (1) ځکه دوی اختيار کړې دې.چه د رسول الله ﷺ قول دې.چه کوم سړې په قضاء باندې مقررکړې شو.هغه د چاړه نه بغير ذبح کړې شو.

حل اللغة: ① مختار-اختيارونکې-② جعل-مقرر کړې شو-③ ذبح-ذبح کړې شو-④ سکين-چاړه

تشريح:- اود بعض عالمانو په نيز د قضاء عهده قبلول مطلقاً مکروه تحريمي ده.که پخپل ځان باندې اعتماد کوي.او که يريږي.صاحب د عنايه ﷬ ليکلې دي.چه دلته کې دکراهت نه مراد عدم جواز دې.او په دليل کې فرمائي.چه صدرالشهيد په ادب القاضي کې وئيلې دي. «ومنهم من قال لايجوز الدخول فيه الامکرها» بعضو عالمانو فرمائيلې دي.چه عهده د قضاء قبلول جائز نه دي.خو په زبردستۍ سره.يعنې که په زبردستۍ سره پيش کړې شي.نو جائز ده.

ددې حضراتو دليل د حضرت ابوهريره ﷺ دا حديث دې.چه کوم سړې قاضي مقرر کړې شو.ګويا دې د چاړه نه بغير ذبح کړې شو.د قضاء عهدې ته د چاړې نه بغير ذبح کاوه سره ځکه تشبيه ورکړې شوې ده.چه چاړه په ظاهر او باطن دواړوکې موثر وي.اود چاړه نه بغير ذبح د روح وتلو په وجه باطن کې موثر کيږي.او په ظاهرکې نه موثر کيږي.دغه ډول د قضاء وبال (بوج) په ظاهرکې نه موثر کيږي.خوپه باطن کې موثر کيږي.ځکه چې د قضاء عهده په ظاهرکې يو عظيم الشان منصب دې.خو په باطن کې واړه هلاکت هلاکت دې.هم دا وجه ده.چه حضرت امام ابوحنيفه ﷬ ته درې ځله د قضاء عهده پيش کړې شوه.خو درې واړه ځل ئې انکار اوکړو.اود انکار کاوه په وجه هرځل ديرش ديرش کوړې اووهلې شو.دغه ډول امام محمد ﷬ ته د قضاء عهده پيش کړې شوه.نو امام محمد ﷬ هم انکار اوکړو.تردې چې امام موصوف ﷬ په قيدخانه کې بنديوان کړې شو.نو مجبوراً ئې قبول کړو.

وَالصَّحِيحُ أَنَّ الدُّخُولَ فِيهِ رُخْصَةٌ طَمَعًا فِي إِقَامَةِ الْعَدْلِ او صحيح قول دادې.چه د عدل قائمولو په طمع کې قضاء کې د داخليدو اجازت دې. وَالتَّرْكُ عَزِيمَةٌ او ددې پريښول عزيمت دې. فَلَعَلَّهُ يُخْطِئُ ظَنَّهُ وَلَا يُوَفَّقُ لَهُ ځکه ممکن ده.چه دده ګمان خطاء اوکړي.او ده ته د صحيح کاوه توفيق نه وي. أَوْلَا يُعِينُهُ عَلَيْهِ غَيْرُهُ،يا د قاضي په حکم قضاء باندې دوهم سړې اعانت (مدد) اونکړي. وَلَا بُدَّ مِنَ الْإِعَانَةِ حالانکه اعانت ضروري دې.

حل اللغة: ① طمع-اميد-② العدل-انصاف-③ العون-مدد-④ يوفق-توفيق ملاويږي

تشريح:- علامه مرغيناني ﷬ فرمائي.صحيح قول دادې.چه د عدل او انصاف قائمولو په اراده سره د قضاء عهده قبلول جائز دي.يعنې که قاضي شو.نو ګناهګار به نه وي.خو عزيمت ددې پريښولو کې دې.اوددې مثال په موزو باندې مسح او په سفر کې روژه ده.يعنې لکه څنګه چې په موزو باندې مسح کول رخصت او پښې وينځل عزيمت دي.او په سفر کې افطار رخصت او روژه نيول عزيمت دې.دغه ډول د قضاء عهده قبلول رخصت او پريښول ئې عزيمت دي.د ترک کاوه په عزيمت کيدلو باندې دليل دادې.که قاضي مجتهد نه وي.نو ددې امکان دې.چه دې

---

(1) من حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه أبوداود في الأقضية باب ۱ رقم ۳۵۷۱ والترمذي في الأحكام باب ۱ رقم ۱۳۲۵ وأبن ماجه في الأحكام باب ۱ رقم ۲۳۰۸ والنسائي؟؟ في السنن الكبرى (۳/۴۶۲) رقم ۵۹۲۳) والبيهقي في السنن الكبرى (۱۰/۱۶۴) رقم ۲۰۲۱۸) وفي معرفة السنن والآثار رقم(۵۸۵۴) وأحمد في المسند (۲/۲۳۰ والدارقطني في سننه (۴/۲۰۴)والحاكم في المستدرک (۴/۹۱) والبوی في شرح السنة (۱۰/۹۲)_

غلطي اوکړي.او ده ته د صحيح فيصلې توفيق نه وي.يا قاضي پخپله مجتهد نه وي.او بل څوک دده اعانت اونکړي.حالانکه په دې صورت کې اعانت ضروري دي.نو ددې حالاتو په لحاظ سره ترک کول عزيمت دي.

إلَّا إذَا كَانَ هُوَ أَهْلًا لِلْقَضَاءِ دُونَ غَيْرِهِ خو کله چې د قضاء اهل هم دا وي.دوهم څوک نه وي. فَحِينَئِذٍ يُفْتَرَضُ عَلَيْهِ التَّقَلُّدُ نو دغه وخت په ده باندې د قضاء عهده قبلول فرض دي. صِيَانَةً لِحُقُوقِ الْعِبَادِ چې د بنده ګانو د حقونو ساتنه اوکړي. وَإِخْلَاءً لِلْعَالَمِ عَنِ الْفَسَادِ او عالم د فساد نه خالي کړي.

حل اللغة: ① التقلد-قبلول -② حينئذ-په دغه وخت -③ صيانة- لپاره د حفاظت-④ اخلاء-خالي کول

تشريح:- او که د قاضي کيدلو لائق هم دا سړې وي.او بل هيڅ څوک موجود نه وي.نو په داسې صورت کې د قضاء عهده قبلول فرض دي.چه د بنده ګانو د حقوقو ساتنه اوکړي.اوعالم د ظلم د فساد نه خالي کړي.

## قضاء عهده طلب کولو حکم

قَالَ وَيَنْبَغِي أَنْ لَا يَطْلُبَ الْوِلَايَةَ وَلَا يَسْأَلَهَا فرمائي.او مناسب دادي.چه نه (څوک) ولايت لټون کړي.او نه ددې درخواست اوکړي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ طَلَبَ الْقَضَاءَ وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ خکه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي.چه کوم سړي د قضاء عهده طلب کړله.نودا د هغه نفس ته سپارلې شي. وَمَنْ أُجْبِرَ عَلَيْهِ نَزَلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ يُسَدِّدُهُ} [1] اوڅوک چې د قضاء قبلولو باندې مجبور کړې شو.په هغه باندې يوه فرښته نازليږي.چه دا ټيک کوي.

حل اللغة: ① الولاية-عهده-② وکل-اوسپارلې شو-③ اجبر-زور اوشي-④ يسدد-صحيح لار ښائي

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.که څوک سړې د قاضي کيدلو صلاحيت لري.بيا هم ده له پکار دي.چه نه خودې په زړه سره ددې خواهش اوکړي.اونه په ژبه سره ددې درخواست اوکړي.خکه دحضرت انس رضي الله عنه حديث دي.چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه کوم سړي د قضاء عهده طلب کړله.دې خپل نفس ته اوسپارلې شو.او څوک چې په دې باندې مجبوره کړې شو.په ده باندې يوه فرښته راکوځيږي.چه دې په صحيح لاره باندې ساتي.

وَلِأَنَّ مَنْ طَلَبَهُ يَعْتَمِدُ عَلَى نَفْسِهِ فَيُحْرَمُ، اوخکه چې کوم کس د قضاء عهده طلب کړله.ده پخپل نفس باندې اعتماد اوکړو.نودې محرومولې شي. وَمَنْ أُجْبِرَ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ عَلَى رَبِّهِ فَيُلْهَمُ اوڅوک چې په دې باندې مجبور کړې شو.دې پخپل رب باندې اعتماد کوي.نوده ته الهام کولې شي.

حل اللغة: ① طلب-غوارې-② يعتمد-اعتماد کوي-③ يتوکل-بهروسه کوي-④ يلهم-ښودنه کولې شي

تشريح:- عقلي دليل دادې.چه کوم سړې د عهدې طالب دې.ګويا ده پخپله پوهه، تقوی، او ذکاوت باندې اعتماد اوکړو.او په دې خيزونو باندې د اعتماد کاوه په وجه په غرور او کبرکې اخته شو.اوکوم کس چې د غرور او تکبر په وجه خپل نفس باندې اعتماد کوي.دې د توفيق الهی نه محرم پاتې کيږي.خکه د الله تعالی ارشاد دي. ﴿إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوءِ﴾ اوڅوک چې د قضاء عهدې قبلولو باندې مجبور کړې شو.دې پخپل پروردګار باندې اعتماد کوي.او څوک چې په الله تعالی باندې اعتماد کوي.هغه ته د الله تعالی توفيق ملاويږي.په دې وجه عهده نه طلب کول مناسب دي.اوکه د بزرګانو د اړخه ورکړې شي.نو په قبلولو کې هيڅ باک نشته.

[1] الحديث المذكور من حديث أنس رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الأقضية باب ۳ رقم ۳۵۷۸ والترمذي في الأحكام باب ۱ رقم ۱۳۲۳ وابن ماجه في الأحكام باب ۱ رقم ۲۳۰۹ وأحمد في المسند (۱۱۸/۳) والحاكم في المستدرک (۹۲/۴) والبيقي في السنن الكبرى (۱۷۲/۱۰) رقم ۲۰۲۴۹) وفي معرفة السنن والآثار رقم ۵۸۵۵)_



## د ظالم بادشاه د اړخه د قضاء د عهدې قبلولو حکم

وَيَجُوزُ التَّقَلُّدُ مِنَ السُّلْطَانِ الْجَائِرِ بيا د ظالم بادشاه د اړخه د قضاء عهده قبلول جائز دي. كَمَا يَجُوزُ مِنَ الْعَادِلِ لکه څنګه چې د عادل بادشاه د اړخه جائز دي.

حل اللغة: ① يجوز-جائز دي-② التقلد-بيعت کول-③ السلطان-حاکم-④ الجائز-ظالم

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه لکه څنګه د عادل او برحق بادشاه د اړخه د قضاء عهده قبلول جائز دي.دغه ډول د ظالم او غير برحق بادشاه د اړخه هم د قضاء عهده قبلول جائز دي.يعنی که څوک سړې بغاوت اوکړي.غالب شي.او فرمان روا شي.بيا څوک د قاضي کيدلو لپاره مجبور کړي.نو دده د اړخه د قضاء عهده قبلول جائز دي.

لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رضي الله عنهم تَقَلَّدُوهُ (دوه) مِنْ مُعَاوِيَةَ رضي الله عنه خکه چې صحابهٔ کرام رضي الله عنهم د حضرت معاويه رضي الله عنه د اړخه د قضاء عهده قبول کړې ده. وَالْحَقُّ كَانَ بِيَدِ عَلِيٍّ رضي الله عنه فِي نَوْبَتِهِ [1] اود حضرت علي رضي الله عنه په وار (واړ) کې حق د خلافت دحضرت علي رضي الله عنه په لاس کې وو.

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله په دليل کې فرمائي.چه د عثمان رضي الله عنه د شهادت نه روسته د خلافت حق حضرت علي رضي الله عنه لپاره وو.لکه څنګه چې د اهل سنت والجماعت په دې باندې اتفاق دې.خو حضرت معاويه بن ابی سفيان رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه خلاف بغاوت اوکړو.اود ملک شام حکمران او فرمان روا جوړ شو.

حضرت عائشه رضي الله عنها په ابتداء کې حضرت معاويه رضي الله عنه سره وه.خو روسته حضرت عائشه رضي الله عنها هم ندامت ښکاره کړې دې.لکه چې ابن عبدالبر په استيعاب کې تخريج کړې دې. «قال قالت (رضي الله عنها) لابن عمر رضي الله عنه يا أبا عبدالرحمن ما منعك أن تنهاني عن مسيري؟ قال رأيت رجلاً غلب عليك يعني ابن الزبير فقالت أما والله لو نهيتني ما خرجت» حضرت عائشه رضي الله عنها ابن عمر رضي الله عنه ته اوفرمائيل.چه ای ابوعبدالرحمن! ته څه شي منع کړې وې.چه تا زه زما د سفر نه منع کړې وې؟ ابن عمر رضي الله عنه اوفرمائيل.ما اوکتل.چه يو سړې يعنی ابن الزبير رضي الله عنه په تا غالب راغلو.نو عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل.په خدائې قسم که تا زه منع کړې ووم.نو زه به نه وتلم.داد هغه وخت واقعه ده.کله چې حضرت عائشه رضي الله عنها د حضرت معاويه رضي الله عنه په حمايت (ملګرتيا) کې د حضرت علي رضي الله عنه خلاف د جنګ په اراده باندې وتلې وه.اوبيا کله چې د نبی کريم ﷺ حديث ورياد شو.نو خپيمانه شوه.او واپس ئې تشريف راوړو.په دې باندې عائشې رضي الله عنها ابن عمر رضي الله عنه ته اوفرمائيل.که تا زه په پيل کې منع کړې ووم.نو زه به نه ووم وتلې.ددې نه هم معلوميږي.چه حق د حضرت علي رضي الله عنه اړخ وو.بهرحال ددې واقعاتو او روايتو نه معلوميږي.چه د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه روسته د خلافت حق د حضرت علي رضي الله عنه وو.خو ددې باوجود د حضرت معاويه رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه په لاس بيعت نه کول، او په ملک شام کې د خپلې حکمرانۍ اعلان کول ښکاره بغاوت وو.نود حضرت معاويه رضي الله عنه سلطان جائر کيدل ثابت شو. او تاريخ په دې ګواه دې.چه حضرت معاويه رضي الله عنه صحابه کرام رضي الله عنهم قاضيان مقرر کړي دي.او صحابه کرامو رضي الله عنهم به د حضرت معاويه رضي الله عنه داړخه عهدې هم قبلولې.لکه چې حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه ئې په شام کې قاضي مقرر کړو.او بيا ددوی د وفات نه روسته هم ددوی د مشورې مطابق فضاله بن عبيد انصاری د شام والی (ګورنر) مقرر کړې شو.ددې نه ثابته شوه.چه د سلطان جائر د اړخه د قضاء عهده قبلول جائز دي.

دغه ډول علامه ابن الهمام رحمه الله د حضرت معاويه رضي الله عنه په بغاوت باندې استشهاد کوي.فرمائي چې رسول اکرم ﷺ حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه ته فرمائيلي وو. «ستقتلك الفئة الباغية» ډير زر به تا يو باغي ډله قتل کړي.حالانکه

[1] قال الزيلعي رحمه الله إن الدليل أن الحق كان بيد علي رضي الله عنه هو قول النبي ﷺ لعمار بن ياسر رضي الله عنه تقتل الفئة الباغية ولاخلاف أنه رضي الله عنه كان مع علي رضي الله عنه وقتله أصحاب معاوية رضي الله عنه نصب الراية (۱۴۲/۴)_

عماربن یاسر رضي الله عنه د حضرت معاویه رضي الله عنه ملګرو قتل کړې دې.ددې نه معلومیږي چه حضرت معاویه رضي الله عنه او ددوی د جماعت خلګ د بغاوت کونکو ځنې وو.

① حضرت معاویه بن ابی سفیان رضي الله عنه د سلطان جائر په مثال کې پیش کول علامه مرغیناني رحمه الله لپاره په هیڅ شان مناسب نه دی.ځکه دا خبره مسلم ده.چه د حضرت علي رضي الله عنه څلورم خلیفه کیدل څه منصوص امر نه دې بلکه مجتهد فیه مسئله ده.زیات نه زیات دا ونیلې شي چه د حضرت معاویه رضي الله عنه لپاره د حضرت علي رضي الله عنه مخالفت کول اجتهادي خطا وه.او د مجتهد خطا صرف معاف کیږي نه، بلکه په دې باندې یو اجرهم ملاویږي.نو کومه خطاء چې معاف کړې شوې وي.بلکه په دې باندې اجرملاویږي.د هغې په وجه د جائر او ظالم الفاظ استعمالول د صاحب هدایه رحمه الله پشان عظیم المرتبت او صاحب ورع (تقوی داره) حضراتو لپاره مناسب نه دی.حضرت معاویه رضي الله عنه اګرچه د خپل اسلام اظهار د فتح مکه نه روسته کړې دې خود عامو عالمانو خیال دی چه حضرت معاویه رضي الله عنه د فتح مکه نه ډېر وړاندې اسلام قبول کړې وو.هم دا وجه ده چه ددوی د مورپلار (ابوسفیان او هنده) پشان ددوی په واقعاتو کې رسول الله صلی الله علیه وسلم او د نورو صحابو رضي الله عنهم سره د بغض او عناد اود تکلیفونو رسولو واقعات نه ملاویږي.

① ابو ادریس خولاني رحمه الله فرمائي چه هرکله حضرت عمربن خطاب رضي الله عنه د حمص نه حضرت عمیر بن سعد رضي الله عنه معزول کړو او حضرت معاویه رضي الله عنه ئې ددې والي (ګورنر) مقرر کړو او خلګو دده په اره کې قسماقسم رائي (او خیالات) بیانول نو حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائیل چه د معاویه رضي الله عنه ذکر په خیر سره کوئ ځکه چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چه،،ای الله! دده په ذریعه خلګو ته هدایت ورکړې یاده ته هدایت ورکړې،، ددې دوارو حدیثونو نه واضح ده چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دعا په احترام کې صحابه کرامو رضي الله عنهم هم د حضرت معاویه رضي الله عنه لپاره خفیف او سپک الفاظ استعمالولو نه ځان ساتلې دي بلکه د ذکرخیر تعلیم ئې ورکړې دې ② امام ترمذي رحمه الله د حضرت معاویه بن ابی سفیان رضي الله عنه په مناقبوکې د حضرت عبدالرحمن بن ابی عمیره رضي الله عنه روایت نقل کړې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د معاویه رضي الله عنه په اره کې اوفرمائیل ،،ای الله! ته دې د هدایت والا،او هدایت موندونکې جوړ کړې، او دده په ذریعه خلګو ته هدایت ورکړې،، ③ په بخاري کې دی چه ابن ابی ملیکه رضي الله عنه اوونیل چه حضرت معاویه رضي الله عنه د ماسخوتن نه روسته د وتر یو رکعت اوکړو ددوی سره د ابن عباس رضي الله عنهما مولا ابن کریب هم وو.دوی لاړل او ابن عباس رضي الله عنهما ته ئې اوونیل.ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائیل چه په معاویه رضي الله عنه باندې نکیر کول پریږده.ځکه چې دې د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابي دې.ددې نه معلومه شوه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابي کیدل دومره عظیم الشان دولت دې چه ابن عباس رضي الله عنهما چې د خاندان رسالت یو عظیم المرتبت صحابي او رئیس المفسرین دې.دوی هم حضرت معاویه رضي الله عنه باندې جرح کول مناسب اونګڼل.نود رسول الله صلی الله علیه وسلم معاویه رضي الله عنه ته د «اللهم اجعله هادیاً مهدیاً واهدبه» په ذریعه دعا کول،اود حضرت عمیر رضي الله عنه «لاتذکروا معاویة الا بخیر» فرمائیل،اود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما «دعه فانه قد صحب رسول الله صلی الله علیه وسلم» فرمائیلو نه پس علامه مرغیناني رحمه الله لپاره جائر او ظالم لفظ استعمالولو اجازت ځنګه ورکیدلې شي؟ چونکه علامه مرغیناني رحمه الله زمونږ بزرګه دې د علم او فضل میره دې د پرهیزګارئ او تقوی مالك دې په دې وجه هم دا ونیلې شي چه دا د سبقت قلم نتیجه ده.اود مصنفینو او مولفینو نه داسې قسمه هیره د قیاس نه لرې هم نه ده.(نقلته عن اشرف الهدایه وقاله مولانا جمیل احمد مدظله العالي)

والتابعین

والتابعین تقلدوی.دوه، من الحجاج وکان جائراً او تابعینو د حجاج د اړخه د قضاء عهده قبوله کړله حالانکه حجاج ظالم وو. الا اذا کان لایمکنه من القضاء بحق خودا که قاضي په قضاء بالحق باندې قادر نه وي.نو بیا به نه قبلوي. لان المقصود لایحصل بالتقلد.ځکه چې د قضاء عهده قبلولو څخه به مقصود نه حاصلیږي. بخلاف ما اذا کان په خلاف د هغه صورت کله چې قاضي په دې باندې قادر وي.

حل اللغة: ① لایمکن-قادر نه وي-② لایحصل-نه حاصلیږي-③ القضاء-قضاوت-④ التابعین-د صحابو لیدونکي

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله په دوهم دلیل کې فرمائي چه حجاج بن یوسف مشهور ظالم حکمران تیرشوې دې خو تابعینو دده د اړخه هم د قضاء عهدې قبول کړي دي مثلاً حجاج بن یوسف ابوبرده ابن ابی موسی قاضي



مقرر کړو.او عبدالله بن ابی مریم د اصفهان قاضي کیدل د حجاج د اړخه قبول کړي دي.ددې نه هم معلومیږي.چه د ظالم بادشاه د اړخه د قضاء عهده قبلول جائز دي.علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د ظالم بادشاه د اړخه د قضاء عهده قبلول جائز دي.خوکه د قاضي لپاره په حق سره فیصله کول ممکن نه وي.نو قاضي کیدل هم جائز نه دي.ځکه چې د قضاء مقصود یعني په ملك کې عدل او انصاف جاري کول به د قضاء په قبلولو سره حاصل نشي.ددې په خلاف که قاضي لپاره په حق سره فیصله کول ممکن وي.نود قضاء عهده قبلولو کې هیڅ باك نشته.

### د قضاء عهده سنبالولو نه روسته ضروري امور

قال ومن قلد القضاء یسلم الیه دیوان القاضي الذي کان قبله فرمائي.اوکوم کس چې قاضي مقرر کړې شو.هغه دې مخکې د قاضي دفتر لټون کړي. وهو الخرائط التي فیها السجلات وغیرها ،،دیوان،، د څرمن هغه تهلئ دي.په کوم کې چې سرکاري فائلونه او نور ریکارډ موجود وي. لانها وضعت فیها لتکون حجة عند الحاجة ځکه چې دا فائلونه په تهیلوکې ایخودې شي.چه د اړتیا په وخت حجت وي. فتجعل في ید من له ولایة القضاء نودا به د هغه سړي په قبضه کې ایخودې شي.چاته چې د قضاء منصب حاصل وي.

حل اللغة: ① یسلم-حواله به کړې شي-② دیوان-رجسټر-③ الخرائط-د څرمن تیلئ-④ السجلات-فائلونه

تشریح:- ابو الحسین قدوري رحمه الله فرمائي.چه کوم سړي ته د قضاء عهده سپارلې شوې ده.دده د ټولو نه ړومبې کار دادې چه دې د معزول شوي قاضي نه د هغه تهیلو په اره کې پوښتنه اوکړي.په کوم کې چې سرکاري فائلونه او ریکارډ ایخودلې شي.علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د دیوان نه مراد د څمرې هغه تهیلئ دی.په کوم کې چې د ساتنه په غرض څه شئ کیخودلې شي.او ددې خوله بندولې شي.نو قاضي سره چې کومې تهیلئ وي.په هغې کې سجلات (رجسټر) یعني د خلګو د مقدمو فائلونه (او ریکارډ) ایخودلې شي.او نور دستاویزات مثلاً د اوقاف فائلونه ایخودلې شي.او په خاوندانو او وارثانو باندې چې د کومو خلګو نفقات مقررولې شي.د هغې تحریرات او فائلونه هم ایخودلې شي.بهرحال لنډیز داده.چه بحال قاضي به د معزول قاضي نه د ذکرشوي تهیلو په اره کې ځکه معلومات کوي.چه په دې تهیلوکې د مقدماتو رجسټرې او نور دستاویزات (او فائیلونه) ځکه ایخودلې شي.چه د اړتیا په وخت په کار راشي.نودا به د موجوده قاضي په لاس کې ایخودلې شي.ځکه چې اوس د ټولو معاملاتو تعلق د موجوده قاضي سره دې.معزول شوي قاضي سره د هیڅ معاملې څه تعلق پاتې نشو.دې خود عامو خلګو پشان یو فرد جوړ شوې دې.

ثم ان کان البیاض من بیت المال فظاهر نوکه ساده کاغذ د بیت المال وي.نو ښکاره خبره ده. وکذا اذا کان من مال الخصوم في الصحیح او هم دغه ډول کله چې دا ساده کاغذ د خصوم د مال څخه وي.نو بیا هم د صحیح قول مطابق هم دا حکم دې. لانهم وضعوها في یده لعمله ځکه چې خصوم دا کاغذات د مخکنی قاضي په لاس کې دده د عمل کاوه لپاره ایخودي وو. وقد انتقل الی المولی او حال داچه مولی (نوې قاضي) اړخ ته منتقل شو. وکذا اذا کان من مال القاضي هو الصحیح او هم دغه ډول (به نوي قاضي ته سپاري) که (ساده کاغذونه) د معزول قاضي د مال (نه اخستې) وي.هم دا صحیح ده. لانه اتخذه تدینا لاتمولا ځکه چې معزول قاضي دا کاغذات د تدین (دیانت او امانت) په طور ځان سره ساتلې وو.د ذخیره کاوه لپاره ئې نه وو ساتلې.

حل اللغة: ① البیاض-ساده کاغذ-② الخصوم-جګړه کونکي-③ تدینا- لپاره د دینداري-④ تمولا- لپاره د مالداري

تشریح:- په دې عبارت کې د یو سوال ځواب دې سوال دادې.چه دا کاغذات په کوم چې تحریرات دي.د کوم سړي ملك وي.هم هغه مالك ګڼل پکار دي.اودا واړه ریکارډ او فائلونه هم ده ته ورکول پکار دي.موجوده قاضي ته ورکول نه دي پکار؟

ځواب:ددې ځواب دادې چې دا کاغذونه به معزول قاضي ته د بیت المال نه ورکړې شوي وي.یا به مدعی او

مدعی علیه ورکړي وي.اویا به د معزول قاضي په مال باندې اخستې شوې وي.په ړومبي صورت کې معزول قاضي ددې کاغذاتو په سپارلو باندې مجبورول ښکاره دي.ځکه چې کوم قاضي مقررشوې دې.د دفتر په سرکاري څیزونو به هم دې قابض وي.نو چارج اخستونکې قاضي چونکه موجوده قاضي دې.په دې وجه ذکرشوې کاغذات او فائلونه اود دفتر واړه ریکارډ به هم دده په قبضه کې وي.اوکه ذکرشوی واړه کاغذات د مدعی او مدعی علیه په مال باندې اخستې شوې وي.نو بیا به هم معزول قاضي په دې باندې مجبورولې شي.چه دوی واړه کاغذات موجوده قاضي ته اوسپاري.ځکه چې مدعی او مدعی علیه دا کاغذات د معزول قاضي په قبضه کې ځکه ورکړي وو.چه دې د خلیفه د اړخه کار کاوه باندې مامور دې.خوکله چې عمل او اقتدار د موجوده قاضي اړخ ته منتقل شو.نودا کاغذات به هم ده ته حواله کولې شي.او معزول قاضي سره به هیڅ کاغذ نشي پریخودلې.اوکه ذکرشوی واړه کاغذات د معزول قاضي په مال سره اخستې شوی وو.نو بیا به هم معزول قاضي مجبورولې شي.چه دې واړه کاغذات موجوده قاضي ته اوسپاري.هم دا صحیح قول دې.ځکه چې معزول قاضي دا کاغذات خپل خان سره د دیانت او امانت په طور باندې ځکه ایخودی وو.چه دې د خلګو د معاملاتو او ددوی د ضروریاتو ساتنه اوکړي.ددې کاغذاتو په ذریعه ذخیره کول او خپل خان توانګر جوړول مقصود نه وو.نوهر کله چې دا کاغذات دده سره د دیانت او امانت په طور وو.اود مملوکه مال په طور نه وو.نو چې څوك هم په دې منصب باندې راځي.هغه ته به حواله کولې شي.

**وَيَبْعَثُ أَمِينَيْنِ لِيَقْبِضَاهَا بِحَضْرَةِ الْمَعْزُولِ أَوْ أَمِينِهِ** اولیګي.چه دوی دواړه په دې تهیلو باندې د معزول قاضي یا دده د امین په موجودګۍ کې قبضه اوکړي. **وَيَسْأَلَانِهِ شَيْئًا فَشَيْئًا** اودا دواړه امانتدار دې د ټولو کاغذونو د یو یو معلومات اوکړي. **وَيَجْعَلَانِ كُلَّ نَوْعٍ مِنْهَا فِي خَرِيطَةٍ** او دواړه امین دې په دې کې هریو کاغذ جلا جلا تهیلۍ کې ایږدي. **كَيْ لَا يَشْتَبِهَ عَلَى الْمُوَلَّى** چې په نوي قاضي باندې اشتباه نه وي. **وَهَذَا السُّؤَالُ لِكَشْفِ الْحَالِ لَا لِلْإِلْزَامِ** اودا معلومات کول د کشف حال لپاره دي.د الزام لپاره نه دي.

**حل اللغة:** ① **یبعث**-لیږي-② **یقبض**-قبض کړي-③ **یشتبه**-ګډوډ کیږي-④ **کشف**-ښکاره کیدل

**تشریح:**- په دې عبارت کې د ذکرشوی کاغذاتودسپارلو د کیفیت بیان دې.فرمائي.چه چارج اخستونکې قاضي دوې «دوه» قابل اعتماد یا یو قابل اعتماد سړې د معزول قاضي په خدمت کې اولیګي.چه دوی د معزول قاضي یا دده د امین په موجودګۍ کې واړه کاغذات او فائلونو باندې قبضه اوکړي.اود موجوده قاضي قاصد د معزول قاضي یا دده د امین نه واړه فائلونه د یو یو معلومات اوکړي.اود هر ډول کاغذات جلا جلا په تهیلۍ کې ایږدي.مثلاً دمقدماتو ریکارډ په جلا تهیلۍ کې کیږدي.اود اوقافو جائیدادونو فائلونه جلا کیږدي.اود نفقاتو فائلونه جلا کیږدي.دغه ډول به هرقسمه فائلونه جلا جلا ایږدي.اوداسې به ځکه کوي.چه په موجوده قاضي باندې کاغذات ګډوډ او مشتبه نشي.د موجوده قاضي قاصد چې کله په ټولو کاغذاتو باندې قبضه اوکړي.نو دواړه په دې باندې مهر اولګوي.چه د کمی زیاتی امکان پاتې نشي.علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د موجوده قاضي قاصد حضراتو د اړخه معزول قاضي نه سوال او جرح کول صرف د معلوماتو حاصلولو لپاره دي.خدانخواسته په معزول قاضي باندې الزام لګول مقصود نه دي.

## د قیدیانو سره د نوي قاضي سلوك كول

**قَالَ وَيَنْظُرُ فِي حَالِ الْمَحْبُوسِينَ** او نوې قاضي دې د قیدیانو په حال باندې نظر واچوي. **لِأَنَّهُ نُصِّبَ نَاظِرًا** ځکه چې دې نګران مقرر کړې شوې دې. **فَمَنِ اعْتَرَفَ بِحَقٍّ أَلْزَمَهُ إِيَّاهُ** نو کوم قیدي چې د حق اقرار اوکړو.نوهغه به په ده باندې لازم کوي. **لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مُلْزِمٌ** ځکه چې اقرار ملزم دې.

**حل اللغة:** ① **ینظر**-ګوري-② **المحبوسین**-قیدیان-③ **اعترف**-اقرار اوکړو-④ **الزم** -لازم به کړي

**تشریح:**- ابو الحسین قدوري رحمه الله فرمائي.چه نوې قاضي د چارج اخستلونه روسته د ټولو نه وړاندې دې د قیدیانو [illegible] باندې نظر اوکړي.یعنی څوك سړې قید خانې ته اولیږلی.ددوی تعداد او ددوی نومونه معلوم کړي.او



ددوی نه دا معلومات اوکړي.چه دوی په څه وجه قیدخانه کې اچولې شوي دي.ځکه چې قاضي د مسلمانانو د امورو او معاملاتو نګران مقررولې شي.اود معزول قاضي قول حجت نه جوړیږي.په دې وجه د قیدیانو حالات معلومول ضروري دي.او ددې صورت دادې.چه نوې قاضي قیدیان او مدعیان راجمع کړي.نوکه کوم قیدي د خپل مدعی د حق خپل خان باندې اقرار اوکړو.نو نوې قاضي به په ده باندې دا حق لازم کړي.اود مدعی په مطالبه کاوه باندې به دې قیدخانې ته واپس کولې شي.ځکه چې اقرار داسې حجت دې.چه په اقرار کونکي باندې هغه شې لازم کړي.د کوم څیزچه ده اقرار کړې دې.اوهرکله چې مدعی د خپل حق په وجه دده د قید کاوه درخواست اوکړي.نودې به قید کولې شي.

**وَمَنْ أَنْكَرَ لَمْ يَقْبَلْ قَوْلَ الْمَعْزُولِ عَلَيْهِ** او چاچه انکار اوکړو.د هغه خلاف به د معزول قول قبول نه وي. **إِلَّا بِبَيِّنَةٍ** خو په بینه سره. **لِأَنَّهُ بِالْعَزْلِ الْتَحَقَ بِالرَّعَايَا** ځکه چې معزول قاضي معزول کیدلو سره رعایا سره ملاؤ شوې دې. **وَشَهَادَةُ الْفَرْدِ لَيْسَتْ بِحُجَّةٍ** اود یو فرد ګواهي حجت نه وي. **لَا سِيَّمَا إِذَا كَانَتْ عَلَى فِعْلِ نَفْسِهِ** خاص کرکله چې پخپل ذاتي فعل کې وي.

**حل اللغة:** **انکر**-انکار اوکړو-**التحق**-یوځائې شو-**الرعایا**-عوام-**لاسیما**-خامخا

**تشریح:**- اوکه قیدي د خپل مدعی د هغه حق انکار اوکړو.کوم چې د حبس او قید سبب دې.او معزول قاضي که دده د قیدکیدلو د سبب خبر ورکړو.نود معزول قاضي قول به نه قبلیږي.ځکه چې معزول قاضي معزول کیدلو سره د رعایا، ،رعیت، ، یو فرد جوړشوې دې.اود یو فرد ګواهي حجت نه وي.بالخصوص کله چې پخپل ذاتي فعل باندې وي.نوپه درجه اولی به حجت نه وي.نود معزول قاضي دا قول چه، ،ما دا په دې وجه قید کړې دې چه په ده باندې قید برحق دې، ،حجت به نه وي.امام شافعي او امام مالك رحمهما الله هم ددې قائل دې.

**فَإِنْ لَمْ تَقُمْ بَيِّنَةٌ لَمْ يُعَجِّلْ بِتَخْلِيَتِهِ** یاکه بینه قائم نشو.نو نوې قاضي به ددې قیدي په آزادولو کې جلتي نه کوي. **حَتَّى يُنَادِيَ عَلَيْهِ** ترڅو چې په دې باندې آواز(اعلان) اوکړي. **وَيَنْظُرَ فِي أَمْرِهِ** او دده په معامله کې نظر اوکړي. **لِأَنَّ فِعْلَ الْقَاضِي الْمَعْزُولِ حَقٌّ ظَاهِرًا** ځکه چې د معزول قاضي فعل په ظاهره ټیك دې. **فَلَا يُعَجِّلُ** نو دده په آزادولو کې به جلتي نه کوي. **كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَى إِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ** چې د غیر د حق باطلولو سبب نشي.

**حل اللغة:** ① **لم تقم**-قائم نکړل -② **تخلیة**-خالي کول-③ **لم یعجل**-تلوار نکوي-④ **ابطال**-باطلول

**تشریح:**- اوکه د قیدي خلاف بینه پیش نکړې شو.یا مدعی حاضر نشو.او قیدي دعوه اوکړله.چه زما خلاف هیڅ څوك مدعی نشته.زه په ناحقه باندې قیدشوې یم.نو نوې قاضي به دده په آزادولو باندې جلتي نه کوي.بلکه څو ورځې به آواز کوي.چه د قاضي د اړخه دا اعلان کولې شي.چه فلانې د فلانې زوې چې په فلانی قیدخانه کې بندیوان دې.که په ده باندې دچا څه مطالبه وي.نوحاضر دې شي.او خپله مطالبه دې ثابت کړي.نوکه مدعی حاضرشو.څو صحیح ده.ګنې قاضي دې څو ورځو پورې دا اعلان بیا بیا اوکړي.څو ورځې اعلان کاوه باندې که مدعی حاضر نشو.نو نوې قاضي دې د قیدي نه کفیل بنفسه واخلي.او آزاد دې کړي.

علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د قیدي خلاف ګواه نه موجود کیدلو په صورت کې قیدي په جلتۍ سره د نه آزادولو حکم په دې وجه ورکړې شوې دې.چه د معزول قاضي فعل یعنی دده قید کول په ښکاره صحیح معلومیږي.ځکه به نې زر نه خلاصوي.ځکه ډیره ممکن ده.چه مدعی غائب وي.او په زر آزادولو سره د مدعی حق باطل شي.په داسې حال کې چې دچا حق باطلول جائز نه دي.

## د امانتونو اود اوقافو آمدنۍ سره د نوي قاضي سلوك

**وَيَنْظُرُ فِي الْوَدَائِعِ وَارْتِفَاعِ الْوُقُوفِ** او نوې قاضي به د امانتونو اود اوقاف د حاصلاتو (آمدنۍ) کې نظر اوکړي. **فَيَعْمَلُ فِيهِ عَلَى مَا تَقُومُ بِهِ الْبَيِّنَةُ** نو څنګه چې ګواهان قائم وي.هم د هغې مطابق دې په دې مالونو کې عمل اوکړي. **أَوْ يَعْتَرِفُ بِهِ**

مَنْ هُوَفِي يَدِهٖ یاد کوم کس په قبضه کي چې وی.هغه دې اقرار اوکړی. لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ حُجَّةٌ.خکه چې هریو حجت دې.
وَلَا يُقْبَلُ قَوْلُ الْمَعْزُولِ اود معزول قاضی قول به نه قبلیږی. لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو.

**حل اللغة:** ① **الودائع**-امانتونه-② **ارتفاع**-خلاصول-③ **يقبل**-قبلولې به شی-④ **البينة**-ګواهان

**تشریح:**- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.چه جدید قاضی د قیدیانو د معلومات کاوه نه روسته به د امانتونو معلومات اوکړی.کوم چې معزول قاضی خپل امانت ګرو سره ایخودی دی.اود اوقافو په آمدنی او خرچ باندې هم نظر اوکړی.چه د اوقافو آمدنی د شرائطو مطابق تقسیمیږی.اوکه نه.اودا معلومات دې هم اوکړی.چه د اوقافو متولی د اوقافو جائیداد چرته پخپله خو نه پټوی.نو قاضی جدید به د امانتونو اود اوقافو په مالونوکي د ګواهانو د ګواهې موافق عمل کوی.مثلاً په دې خبره ګواهی ورکړې شوه.چه خالد سره کوم امانت دې.هغه د حامد دې.نو جدید قاضی به ذکرشوې امانت د خالد نه اخلي.او حامد ته به نې ورکوی.یا قابض اقرار اوکړی.چا چې ما سره دا د فلانی امانت دې.نو جدید قاضی به ددې موافق عمل کوی.د بینه یاد قابض د اقرار موافق عمل کاوه دلیل دادې.چه د قاضی جدید د عمل کاوه لپاره د حجتِ شرعیه موجود کیدل ضروری دی.او بینه اود قابض اقرار، په دې دواړوکي هر یو حجتِ شرعی دې.لهذا جدید قاضی به د بینه موافق هم عمل کوی.اود قابض د اقرار مطابق د عمل کاوه به هم پابندی کوی.

إِلَّا أَنْ يَعْتَرِفَ الَّذِي هُوَفِي يَدِهٖ مګر داچه دچا په قبضه کي امانتونه دی.هغه اقرار اوکړی. أَنَّ الْمَعْزُولَ سَلَّمَهَا إِلَيْهِ چې معزول قاضی ده ته سپارلی دو. فَيُقْبَلُ قَوْلُهٗ فِيهِمَا نو ددې امانتونو په اړه کي به د معزول قاضی قول قبول وی. لِأَنَّهٗ ثَبَتَ بِإِقْرَارِهٖ خکه چې د قابض په اقرار سره ثابت شو. أَنَّ الْيَدَ كَانَتْ لِلْقَاضِي فَيَصِحُّ إِقْرَارُ الْقَاضِي چې حقیقی قبضه د قاضی وه.نود معزول قاضی اقرار به صحیح وی. كَأَنَّهٗ فِي يَدِهٖ فِي الْحَالِ ګویا امانتونه فی الحال دده په قبضه کي دی.

**حل اللغة:** ① **سلم**-سپارلې وه-② **يصح**-صحیح کیږی-③ **المعزول**-فارغ کړې شوې-④ **يد**-لاس، اختیار

**تشریح:**- اوکه معزول قاضی د قابض خلاف څه اووئیل.مثلاً معزول قاضی اووئیل.چه خالد سره د حامد زر روپۍ امانت دی.او خالد ددې انکار اوکړو.اووې وئیل.چه دا زر روپۍ خو زما دی.نو په دې صورت کي به د معزول قاضی قول نه قبلیږی.خکه چې د معزول کیدلو په وجه دې د رعایا ، ،رعیت، ، یو فرد دې.او خانله د یو سړی قول حجت نه وی.په دې وجه به د معزول قاضی قول نه قبلیږی.البته که قاضی اقرار اوکړو.چه دا امانت معزول قاضی ماته سپارلې وو.او ماته دا معلومه نه ده.چه د چا دې.یا قابض دا اووائی.چه دا امانت معزول قاضی ماته سپارلې وو.اودا د فلانی د خوی د فلانی دې.او معزول قاضی هم دده لپاره اقرار کوی.نو په دې دواړو صورتونوکي به د معزول قاضی قول قبول وی.خکه چې د قابض په اقرار سره ثابته شوه.چه په امانت باندې په اصل کي د معزول قاضی قبضه وه.اوهرکله چې په اصل کي د معزول قاضی قبضه وه.نو ګویا ذکرشوې امانت فی الحال هم د معزول قاضی په قبضه کي دې.اود امانت په سلسله کي چونکه امین یعنی د قابض قول معتبر وی. په دې وجه ذکرشوی دواړو صورتونوکي به د معزول قاضی قول قبول وی.

إِلَّا إِذَا بَدَأَ بِالْإِقْرَارِ لِغَيْرِهٖ خو که چې قابض مخکي د بل چا لپاره اقرار کړې وی. ثُمَّ أَقَرَّ بِتَسْلِيمِ الْقَاضِي بیانې د معزول قاضی د سپارلو اقرار کړې وی. فَيُسَلِّمُ مَا فِي يَدِهٖ إِلَى الْمُقَرِّ لَهُ الْأَوَّلِ نو کوم څه چې مقر سره دی.هغه به مقرله اول (چا لپاره نې چې مخکي اقرارکړې دې) ته سپاری. لِسَبْقِ حَقِّهٖ خکه چې د هغه حق وړاندې دې. وَيُضَمِّنُ قِيمَتَهُ لِلْقَاضِي بِإِقْرَارِهِ الثَّانِي اود خپل ثانی اقرار په وجه به د معزول قاضی لپاره ددې د قیمت ضامن وی. وَيُسَلِّمُ إِلَى الْمُقَرِّ لَهُ مِنْ جِهَةِ الْقَاضِي اودا قیمت به هغه کس ته ورکولې شی.دچا لپاره چې د معزول قاضی د اړخه اقرار کړې شوې دې.

**حل اللغة:** ① **بدا**-شروع-② **تسليم**-حواله کول-③ **سبق**-وړاندې والی-④ **يضمن**-تاوانی کولې شی

**تشریح:**- او که قابض یعنی امین وړاندې دا اقرار اوکړو.چه ما سره دا مال د خالد امانت دې.بیا قابض اقرار



اوکړو.چه ماته دا مال معزول قاضی سپارلې وو.او معزول قاضی د خالد نه علاوه د بل کس لپاره اقرار کوی.نو قابض ته به حکم ورکولې شی.چه دې دا مال خالد ته اوسپاری.دچا لپاره نې چې مخکي اقرارکړې دې.خکه چې دده د پاره د وړاندې اقرار کاوه په وجه دده حق مقدم دې.او په دوهم خلی د معزول قاضی د اړخه د سپارلو اقرار کاوه په وجه به معزول قاضی لپاره ددې د مثل ضامن وی.که دا مال د ذوات الامثال څخې وی.اوکه د ذوات القیم څخې وی.نو ددې د قیمت به ضامن وی.بیا به معزول قاضی ذکرشوې مثل یا قیمت هغه چاته ورکوی.دچا لپاره چې معزول قاضی اقرار کړې دې.

### د قاضی د ناستې ځائې اود کیناستلو کیفیت

قَالَ وَيَجْلِسُ لِلْحُكْمِ جُلُوسًا ظَاهِرًا فِي الْمَسْجِدِ فرمائی.او قاضی به د فیصلې کاوه لپاره په جمات کي ښکاره کینی. كَيْ لَا يَشْتَبِهَ مَكَانُهٗ عَلَى الْغُرَبَاءِ وَبَعْضِ الْمُقِيمِينَ، چې په مسافرو او مقیمینو باندې دده ځائې مشتبه نه وی. وَالْمَسْجِدُ الْجَامِعُ أَوْلٰى او جامع مسجد بهتر دې. لِأَنَّهٗ أَشْهَرُ خکه چې دا مشهور مقام دې.

**حل اللغة:** ① **يجلس**- کښینیې به-② **الغرباء**-غریبانان-③ **مقيمين**-دمقیم جمع-④ **اشهر**-زیات مشهور

**تشریح:**- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.چه قاضی به د مقدماتو د سماعت (اوریدلو) لپاره په جمات کي ښکاره کینی.چه په مسافرو او بعض مقیمو خلکو باندې دده ځائې مشتبه نشی.او جامع مسجد زیات غوره دې.خکه چې جامع جمات داسې مشهور مقام وی.چه دا هر ډول کس پیژنی.هلته کي به په تلوکي هیڅ چاته څه تکلیف نه وی.خودا هغه وخت دی.کله چې جامع جمات د ښار په منځ کي وی.خوکه جامع مسجد د ښار په اطرافوکي وی.نو قاضی دې دداسې جمات انتخاب اوکړی.چه د ښار په منځ کي وی.چه د هر اړخ خلګ په آسانتیا سره راورسی.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې تفصیل قائل دی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يُكْرَهُ الْجُلُوسُ فِي الْمَسْجِدِ لِلْقَضَاءِ او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د فیصلې لپاره په جوماتکي کښینستل مکروه دی. لِأَنَّهٗ يَحْضُرُهُ الْمُشْرِكُ وَهُوَ نَجَسٌ بِالنَّصِّ خکه چې د فیصلې لپاره به په جوماتکي مشرك هم حاضریږی.حالانکه هغه په نص د قرآن نجس دې. وَالْحَائِضُ وَهِيَ مَمْنُوعَةٌ عَنْ دُخُولِهٖ او حائضه ښځه به هم راځی.حالانکه دا جمات کي د داخلیدو نه منع کړې شوې ده.

**حل اللغة:** ① **يكره**-مکروه ده-② **يحضر**-حاضریږی-③ **نجس**-پلیت-④ **ممنوعة**-منع کړې شوې

**تشریح:**- حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د مقدماتو د سماعت لپاره د قاضی په جمات کي کښینستل مکروه دی. دلیل دادې.چه په جمات کي به فیصلې لپاره مشرك هم حاضریږی.حالانکه مشرك نجس (پلیت) دې.لکه چې د الله تعالی ارشاد دې. ﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوٓا إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ﴾ او حائضه ښځې به هم حاضریږی.حالانکه ددوی په جمات کي داخلیدل ممنوع دی.لکه چې صاحب شریعت فرمائیلی دی. «إِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ» په دې حدیث کي د حائضه او جنبی لپاره په جمات کي داخلیدل جائز نه دی

وَلَنَا قَوْلُهٗ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {إِنَّمَا بُنِيَتِ الْمَسَاجِدُ لِذِكْرِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالْحُكْمِ}(1) او زموږ دلیل دادې.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.چه جماتونه د الله تعالی د ذکر اود فیصلو کاوه لپاره جوړ کړې شوی دی.

(1) غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج من حديث أنس رضي الله عنه قال بينما نحن في المسجد مع رسول الله صلى الله عليه وسلم إذ جا أعرابي فقام يبول في المسجد فقال أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم مه مه.فقال صلى الله عليه وسلم لا تزرموه،دعوه فتركوه حتى بال ثم أنه صلى الله عليه وسلم دعاه فقال له إن هذه المساجد لا تصلح لئ من هذا البول ولا القذر وإنما هي لذكرالله والصلاة وقراءة القرآن قال وأمر رجلاً من القوم فعا بدلوو من ماء فشنه عليه قال محققه شمس الدين أخرجه مسلم في الطهارة رقم ١٠٠ والبخاري في الأدب ٣٥ رقم ٦٠٢٥ مختصراً من حديث أنس وابن ماجه في الطهارة باب ٧٨ رقم ٥٢٨ وأحمد في المسند(١٩١/٣)_

حل اللغة: ① بنيت-جوړشوی -② المساجد-جمع د مسجد جمات-③ ذكرالله-دالله ياد -④ الحكم-فيصله

تشريح:- زمونږ① دليل دا حديث دي. ﴿انما بنيت المساجد لذكرالله والحكم﴾ يعنى جماتونه د الله ﷻ د ذكر او مقدماتو د فيصلو لپاره جوړشوی دی.علامه ابن الهمام ﷫ فرمائيلي.دی.چه دا حديث په دي الفاظو سره مشهور نه دي. بلكه امام مسلم ﷫ دا حديث په دي الفاظو سره ذكركړي دي.چه كله يو بانډچي په جمات كي بولي اوكړلي. صحابه كرامو﷡ دده منع كول اوغوښتل.نو نبى كريمﷺ اوفرمائيل.دي په منځ كي مه منع كوئ.دي پريږدئ.نو دي پريخودلي شو.ترڅو چي ده بولي اوكړلي.بيا رسول اللهﷺ راوغوښتلو.او وي فرمائيل. ﴿إن هذه المساجد لا تصلح لشئ من هذا البول والقذر وانما هي لذكرالله تعالى والصلاة وقراءة القرآن﴾ يعنى په جماتونوكي بولي كول او چټلي خوروول جائز نه دي.جماتونه خو صرف د الله ﷻ د ذكر، مونځ، اود قرآن قراءت لپاره دی.په دي روايت كي د مقدماتو د فيصلو هيڅ ذكرنشته.نودا حديث د احنافو ﷭ مستدل نه جوړيږي.

{وَكَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَفْصِلُ الْخُصُوْمَةَ فِي مُعْتَكِفِهِ} (1) او نبى كريمﷺ به پخپل د اعتكاف ځاني كي فيصلي كولي.

حل اللغة: ① يفصل-فيصلي كولي-② الخصومة-جګړه كونكي-③ معتكف-داعتكاف ځاني

تشريح:- د احنافو دليل دا هم چي رسول اللهﷺ به په خپل معتكف كي د مقدماتو فيصله فرمائيله.لكه چي په صحيحينوكي د سهل بن سعد﷛ د لعان حديث دي.په هغي كي دا ذكر دی.چه يوسړي او ښځي په جمات كي لعان اوكړو.حالانكه په دوی كي يو يقيناً دروغژن دي.نو معلومه شوه.چه د دروغو قسم او دروغ وئيل، په جمات كي د مقدماتو د فيصلو كاوه لپاره مانع نه دی.② په طبراني كي د ابن عباس﷠ حديث دي. د ابن عباس﷠ نه روايت دي.چه نبى كريمﷺ د جمعې خطبه وركوله.چه يو سړي راغی.اود خلګو په سټونو باندي راوښتلو.نبى كريمﷺ ځواله كينه.نو دي كيناستلو.بيا دوباره پاسيدلو.او وي وئيل.چه يارسول اللهﷺ! ما باندي حد قائم كړه.نبى كريمﷺ اوفرمائيل.كينه.دي كيناستلو.بيا په دريم ځلي پاسيدلو.اووي وئيل.چه يا رسول اللهﷺ! ما باندي حد قائم كړه.نبى كريمﷺ اوفرمائيل.چه ستا حد څه دي.هغه اووئيل.ما يوي ښځي سره حرام كړي دی.نو نبى كريمﷺ حضرت علي، ابن عباس، زيد بن حارثه او عثمان بن عفان رضى رحمهالله عنهم (مصو ته حكم اوكړو.چه دي بهرته اوباسئ.او دُرې ( كوړي) اولګوئ.او ده تراوسه پوري واده نه ووكړي.نو عرض اوكړي شو.چه اې د الله تعالى رسولهﷺ! آيا دغه ښځي ته به حد نشي لګولي.د كومي ښځي سره ني چي حرام كړی دی.نو نبى كريمﷺ هغه سړی ته اووئيل.چه تا سره كومه ښځه ( مبتلا) ده.هغه اووئيل.چه فلانئ ښځه ده.نو نبى كريمﷺ هغه راوغوښتله.پوښتنه ئي تري اوكړو.ښځي اووئيل اې د الله رسولهﷺ! ده ما باندي دروغ اوتړل.والله زه دا سړي نه پيژنم.نو نبى كريمﷺ دي سړی ته اووئيل.چه ستا ګواه څوك دي؟ هغه اووئيل.چه يا رسول اللهﷺ! زما هيڅ څوك ګواه نشته.نو نبى كريمﷺ حكم اوكړو.چه ده ته د بهتان په حد كي اتيا كوړي وركړئ.ددي واقعي نه معلوميږي.چه په جماتونوكي د مقدمو فيصله كول جائز دی.

وَكَذَا الْخُلَفَاءُ الرَّاشِدُوْنَ كَانُوْا يَجْلِسُوْنَ فِي الْمَسَاجِدِ لِفَصْلِ الْخُصُوْمَاتِ (2) اوهم دغه ډول به خلفائي راشدين د خصوماتو د فيصلي لپاره په جمات كي كيناستل.

حل اللغة: ① الخلفاء-جمع د خليفه-② الراشدون-هدايت يافته-③ فصل-فيصله-④ الخصومات-جګړو

(1) قال فيه الزيلعي رحمه الله غريب ثم قال وفي صحيح البخاري في باب من قضى ولاعن في المسجد، ولاعن عمر عند منبرالنبي ﷺ وقضى شريح بالشعبي ويحى بن يعمر في المسجد وقضى مروان على زيد بن ثابت باليمن عند المنبر كذا في نصب الراية (۱۴۵/۴)_

(2) قال الزيلعي ﷫ غريب ثم قال وفي صحيح البخاري في باب من قضى ولاعن في المسجد، ولاعن عمر عند منبرالنبي ﷺ وقضى شريح بالشعبي ويحى بن يعمر في المسجد وقضى مروان على زيد بن ثابت باليمن عند المنبر كذا في نصب الراية (۱۴۵/۴)_



تشريح:- دغه ډول به خلفائي راشدين هم د مقدماتو د فيصلو لپاره په جمات كي كيناستل.لكه چي د حضرت عمر او حضرت عثمان﷠ نه په جمات كي د مقدماتو اوريدل ثابت دی.او قاضي ابوبكر ابن محمد بن عمرو بن حزم چي دې د حضرت عمربن عبدالعزيز ﷫ په زمانه كي قاضي وو.په جمات كي به كيناستلو.او فيصلي به ئي وركولي.

وَلِأَنَّ الْقَضَاءَ عِبَادَةٌ فَيَجُوْزُ إِقَامَتُهَا فِي الْمَسْجِدِ كَالصَّلَاةِ اوځكه چي د قاضي فيصله كول يو عبادت دې.نود لمونځ پشان دا په جمات كي قائمول جائز دی.

حل اللغة: ① القضاء-فيصله -② اقامت-قائميدل -③ المسجد-جمات-④ الصلاة-مونځ

تشريح:- عقلي دليل دادې.چه د حق مطابق فيصله وركول يو عبادت دې.اود عبادت په جمات كي دننه قائمول ټيك دی.

وَنَجَاسَةُ الْمُشْرِكِ فِي اعْتِقَادِهِ لَا فِي ظَاهِرِهِ اود مشرك نجاست چونكه دده په اعتقاد كي دې.دده په ظاهر( بدن) كي نه دې. فَلَا يُمْنَعُ مِنْ دُخُوْلِهِ ځكه به دې جمات كي داخليدلو نه نشي منع كولي.

تشريح:- حضرت امام شافعي ﷫ ته په ځواب كي علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه مشركين اعتقاداً ناپاك وی.د ظاهري بدن په اعتبار سره ناپاك نه وی.او اعتقادي نجاست جمات ته داخليدلو لپاره مانع نه دې.هم دا وجه ده.چه د مشركانو وفدونه به د نبى كريمﷺ په خدمت كي په جمات كي دننه حاضريدل.او ثمامه بن اثال ئي په جمات كي ستني پوري تړلې وو.حالانكه ثمامه غيرمسلم وو.نو معلومه شوه.چه مشركانو لپاره په جمات كي داخليدل جائز دی.

وَالْحَائِضُ تُخْبِرُ بِحَالِهَا او حائضه ښځه به د خپل حال خبر وركوی. فَيَخْرُجُ الْقَاضِي إِلَيْهَا أَوْ إِلَى بَابِ الْمَسْجِدِ بيا به قاضي ددې اړخ ته يا د جمات دروازې اړخ ته راوځي. أَوْ يَبْعَثُ مَنْ يَفْصِلُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ خَصْمِهَا يا به هغه كس راليږي.چه دده او دده د مخاصم په منځ كي فيصله اوكړي. كَمَا إِذَا كَانَتِ الْخُصُوْمَةُ فِي الدَّابَّةِ لكه مثلاً كله چي په يوځاروی كي جګړه وی.

حل اللغة: ① تخبر-خبرور كوی-② يخرج-راوځي-③ باب -دروازه-④ الدابة-ځاروې

تشريح:- پاتې شوه حائضه ښځه،نودا به قاضي ته دخان حائضه كيدل وائي.نو قاضي به راوځي.ددې ځواله به د جمات دروازې ته راځي.يا خپل څوك نائب به راليږي.د حائضه او ددې د مخاصم په منځ كي به فيصله كوی.لكه مثلاً كه جګړه په يو ځاروی كي وی.نو حيوان (ځاروې) به د جمات نه بهر اودرولې شي.اود دعوې اوريدلو لپاره به قاضي پخپله بهرته راوځي.

وَلَوْ جَلَسَ فِي دَارِهِ لَا بَأْسَ بِهِ او قاضي پخپل كور كي كيناستلو.نو په دې كي هم څه باك نشته. وَيَأْذَنُ لِلنَّاسِ بِالدُّخُوْلِ فِيْهَا او خلګو ته په دې كوركي د داخليدو اجازت وركړي.

حل اللغة: جلس- كيناستلو-دار-كور-يأذن-اجازت وركوی-للناس-خلق

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.كه قاضي د مقدماتو د فيصلو لپاره پخپل كوركي كيني.نو په دې كي هم څه باك نشته.خو شرط دادې.چه خلګو ته په كور كي دننه د راتلو اجازت وی.څوك منع نكړي.ځكه چي په رعيت كي هركافر اومسلمان ته دده په عدالت كي د راتلو حق حاصل دې.اوكه دا كور د ښار په منځ كي وی.نو بهتره ده.

وَيَجْلِسُ مَعَهُ مَنْ كَانَ يَجْلِسُ قَبْلَ ذٰلِكَ اوكوم خلګ چي د قاضي كيدلو نه وړاندې دده سره كيناستل.هغوی دې اوس هم دده سره كيني. لِأَنَّ فِي جُلُوْسِهِ وَحْدَهُ تُهْمَةٌ ځكه چي دده په خانله كيناستلوكي تهمت دې.

حل اللغة: معه-قاضي سره-قبل-وړاندې -وحده-ځانله-تهمة-تهمت\تور

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه كوم خلګ د قاضي كيدلونه وړاندې دده سره كيناستل.هغوی دې اوس هم دده سره كيني.ځكه چي په ځانله ناسته كي د رشوت اخستلو يا په ظلم كاوه سره د متهم كيدلو خطره ده.لكه نقل

دي.چه كله به ځلور صحابه كرام﷜ موجود نه وو.حضرت عثمان﷜ به هيڅ حكم نه وركولو.او مستحب دا دى.چه د قاضي په مجلس كي د فقهاؤ يو جماعت كيني.او قاضي ددوى سره مشوره كوى.لكه چې د صديق اكبر﷜ په مجلس كي به حضرت عمر، عثمان،او علي﷜ حاضر اوسيدل.

### قاضي لپاره د هديه قبلولو حكم

قَالَ وَلَا يَقْبَلُ هَدِيَّةً إِلَّا مِنْ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ فرمائي.او قاضي به د هيڅ چا هديه نه قبلوى.سوا د خپل ذى رحم محرم، أَوْمِمَّنْ جَرَتْ عَادَتُهُ قَبْلَ الْقَضَاءِ بِمُهَادَاتِهِ يا د داسي كس دچا سره ئي چې د قاضي كيدلونه وړاندې خپل منځ كي د هديه اخستلو او وركاوه عادت جاري وو. لِأَنَّ الْأَوَّلَ صِلَةُ الرَّحِمِ ځكه چې رومبې د صله رحمئ په طور دې، وَالثَّانِي لَيْسَ لِلْقَضَاءِ او دوهم د قاضي كيدلو په وجه نه دې. بَلْ جَرَى عَلَى الْعَادَةِ بلكه دعادت په طوردې

حل اللغة: ① يقبل- قبلوى-② هدية- ډالى-③ مهادات- ډالئ وركول-④ صلة الرحم-خپلولي پالل

تشريح:- په هديه او رشوت كي توپير دې.رشوت په دې شرط سره وركولې شي.چه اخستونكې دده كومك اوكړي.او په هديه كي دا شرط نه دې.ابو الحسين قدورى﷫ فرمائي.چه قاضي به د دوې (دوه) كسانو نه علاوه د هيڅ چا هديه نه قبلوى.① ذى رحم محرم يعني قرابت دار ( رشته دار) ② د چا سره چې د قاضي كيدلو نه وړاندې د هديه اخستلو او وركاوه عادت جاري وو.

ؕ اود قاضي لپاره د هديه قبلولو په عدم جواز باندې حجت دا حديث دې.په بخاري شريف كي د ابوحميد الساعدي نه نقل دى. «ان رسول الله ﷺ استعمل رجلاً من الازد على الصدقة فلما قدم قال هذا لكم وهذا أهدى لي فقال رسول الله ﷺ فهلا جلس في بيت أبيه أو بيت أمه فينظر أيهدى له أم لا» يعني رسول الله ﷺ د ازد قبيلې يو سړي په صدقه باندې مقرر كړو.بيا كله چې دې راغئ.نو وې وئيل.چه دا ستاسو مال دې.اودا ماته هديه راكړې شوې ده.نو رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل.دى ولې د خپل مور يا خپل پلار په كوركي نه كيناستلو.چه كتلى شوى وو.چه ده ته هديه وركولاى شي اوكه نشي وركولې؟

ؕ اود ذى رحم محرم هديه قبلول ځكه جائز دى.چه دا هديه د صله رحمئ په وجه ده.د قاضي كيدلو په وجه نه ده.اوهم دغه ډول د قاضي كيدلو نه وړاندې چې دچا سره د هدې د لين دين عادت جاري وو.د قاضي كيدلو نه روسته د هغه هديه قبلول به د قاضي كيدلو په وجه نه وى.بلكه د مخكنى عادت په وجه به وى.اوكومه هديه چې د قاضي كيدلو په وجه نه وى.د هغې په قبلولوكي هيڅ باك نشته.په دې وجه د ذى رحم محرم هديه،اود چا سره ئې چې د مخكې نه عادت جاري وو، ددوى هديه قبلول جائز دى.

وَفِيمَا وَرَاءَ ذٰلِكَ يَصِيرُ آكِلًا بِقَضَائِهِ،او ددې نه په علاوه كي به د قاضي كيدلو په وجه خوړونكې وى. حَتّٰى لَوْ كَانَتْ لِلْقَرِيبِ خُصُومَةٌ لَا يَقْبَلُ هَدِيَّتَهُ، تردې كه د يو قريبي رشته دار مقدمه وى.نو دده هديه به هم نه قبلوى. وَكَذَا إِذَا زَادَ الْمُهْدِي عَلَى الْمُعْتَادِ او دغه ډول د عادت په طور هديه وركونكى چې كله دعام عادت نه زيات راؤليګلو. أَوْكَانَتْ لَهُ خُصُومَةٌ يا دده څه مقدمه وى. لِأَنَّهُ لِأَجْلِ الْقَضَاءِ ځكه چې دا د قاضي كيدلو په وجه دې. فَيَتَحَامَاهُ نو ددې څخه به پرهيز كوى.

حل اللغة: ① وراء -سيوا ،علاوه -② اكلا -خوړل-③ المهدى-هديه شوې څيز-④ يتحاما-پرهيز كوى

تشريح:- او ددې دواړو نه د علاوه هديه چونكه د قاضي كيدلو په وجه دى.په دې وجه به ددې دواړو نه د علاوه هديه قبلول جائز نه وى.تردې كه د يو رشته دار مقدمه جاري وى.( زير سماعت وى) نو قاضي به دده هديه هم نه قبلوى.يا دچا سره ئي چې د مخكې نه عادت جاري وو.كه دده مقدمه زيرسماعت وى.نو دده هديه به هم نه قبلوى.يا ده د عام عادت نه زيات راؤليګلو.نو زياتى مقدار به نه قبلوى.اګرچه دده مقدمه زيرسماعت نه وى.ځكه چې دا( زيادت) د قاضي كيدلو په وجه دې.نو ددې څخه به پرهيز كوى.

وَلَا يَحْضُرُ دَعْوَةً إِلَّا أَنْ تَكُونَ عَامَّةً او هيڅ دعوت كي به نه ځي.سوا ددې نه كه عام دعوت وى. لِأَنَّ الْخَاصَّةَ لِأَجْلِ الْقَضَاءِ



فَيُتَّهَمُ بِالْإِجَابَةِ،ځكه چې خصوصي دعوت به د قاضي كيدلو په وجه وى.نو ددې په قبلولوكي به متهم كيږى. بِخِلَافِ الْعَامَّةِ، په خلاف د عام دعوت، وَيَدْخُلُ فِي هٰذَا الْجَوَابِ قَرِيبُهُ او په دې حكم كي د قاضي قريبي ( رشته دار) هم ګډ دې. وَهُوَ قَوْلُهُمَا او هم دا د شيخينو ﷭ قول دې.

حل اللغة: ① دعوة-د خوراك بلنه-② الاجابة-قبلول-③ الجواب-حكم-④ قريب-رشته دار

تشريح:- علامه مرغيناني﷫ فرمائي.چه قاضي به خصوصي دعوت نه قبلوى.البته عام دعوت قبلولې شى.ځكه چې خصوصي دعوت به د قاضي كيدلو په وجه وى.او ددې په قبلولو سره به متهم كيږى.په خلاف د عام دعوت، ځكه چې عام دعوت قبلولې شى.ځكه چې د عمومى دعوت په قبلولوكي به قاضي نه متهم كيږى.علامه مرغيناني﷫ فرمائي.چه په دې حكم كي يعنى په خصوصي دعوت نه قبلولوكي د قاضي قريبي رشته دارهم ګډ دى.يعنى قاضي به خصوصي دعوت نه قبلوى.دعوت كونكې كه اجنبي وى.او كه ذى رحم محرم وى.هم دا د شيخينو ﷭ قول دى.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ يُجِيبُهُ([1])اود امام محمد﷫ نه نقل دى.چه د ذى رحم محرم دعوت دې قبول كړى. وَإِنْ كَانَتْ خَاصَّةً كَالْهَدِيَّةِ، اګرچه خاص دعوت وى.لكه څنګه چې هديه قبلوى. وَالْخَاصَّةُ مَا لَوْ عَلِمَ الْمُضِيفُ أَنَّ الْقَاضِيَ لَا يَحْضُرُهَا لَا يَتَّخِذُهَا او خاص دعوت دادې.كه ميزبان ته دا معلومه شى.چه قاضي به نه راځي.نودې به دعوت نه تياروى.

حل اللغة: ① يجيب-قبلوى -② المضيف-كوربه-③ يحضر-حاضريږى-④ يتخذ- تياروى

تشريح:- حضرت امام محمد﷫ فرمائي.چه قاضي د ذى رحم محرم دعوت قبلولې شى.اګرچه خصوصي دعوت وى.لكه څنګه چې دده هديه قبلولې شى.او په عام او خاص دعوت كي توپير دادې.كه داعى ته دا معلومه شى.چه قاضي به رانشى.نودې دا ملتوى ( روسته) كړى.نودا خاص دعوت دې.اوكه داسې نه وى.نودا عام دعوت دې.او بعض مشائخو فرمائيلى دى.چه د لسو سړو نه كم خاص دعوت دې.اوكه داسې نه وى. يعنى ددې نه زيات وى.نو دا عام دعوت دې.او بعض فرمائي.چه د نكاح او سنت ( ختنه) دعوت، عام دعوت دې.او ددې نه علاوه خاص دعوتونه دى.

### قاضي لپاره فريقينو سره د برابرئ حكم

قَالَ وَيَشْهَدُ الْجَنَازَةَ وَيَعُودُ الْمَرِيضَ فرمائي.او قاضي به جنازې ته حاضريږى.اود مريض عيادت ( بيمار پُرسى) به كوى. لِأَنَّ ذٰلِكَ مِنْ حُقُوقِ الْمُسْلِمِينَ، ځكه چې دا دمسلمانانو د حقوقو ځنې دى. قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لِلْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتَّةُ حُقُوقٍ}([2]) رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.چه ديو مسلمان په بل مسلمان باندې شپږ حقونه دى. وَعَدَّ مِنْهَا هٰذَيْنِ هم دهغې نه نبى كريم ﷺ دا دواړه هم شمار كړل.

حل اللغة: ① يشهد-حاضريږى -② يعود-بيمارپرسى كوى-③ ستة -شپږ-④ عد-شمارلې ئې دى

تشريح:- ابو الحسين قدورى﷫ فرمائي.چه قاضي دې په جنازه كي شركت كوى.اود بيمار، بيمارپرسى دې كوى.ځكه چې دا دواړه شيان د خلګو د حقوقو ځنې دى.نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى.چه د يومسلمان په بل مسلمان باندې شپږ حقونه دى.په هغې كي يو په جنازه كي حاضريدل هم دى.اويو د بيمار بيمارپرسى كول هم دى.په مسلم شريف كي د ابوهريره﷜ نه روايت دې. «قال رسول الله ﷺ حق المسلم على المسلم خمس رد السلام وتشميت العاطس وإجابة الدعوة

[1]) القول الراجح هوهذا قول محمد﷫ في دعوة القريب كذا في ردالمحتار(٣٤٧\٤) والبحرالرائق (٢٨١\٦) وبحرالرائق (٢٨٠\٦) نقلاً عن القول الراجح (١٠٦\٢)-

(١) أخرجه البخارى في الجنائز باب الأمر باتباع الجنائز رقم ١٢٤٠ ومسلم في السلام باب من حق المسلم على المسلم رد السلام رقم ٤ وأحمد في المسند(٣٧٢/٢)_

وعيادة المريض واتباع الجنائز واذا استنصحك فانصح له فهذه هي السادسة﴾ يعني د يو مسلمان په بل مسلمان باندې پنځه حقونه دي.د سلام ځواب ورکول،د فرنجي ځواب، دعوت قبلول، د بیمار بیمارپرسی کول، دجنازې اتباع کول.اوکله چې دې تانه نصیحت اوغواړي، نو ده ته نصیحت کوه.هم دا شپږم حق دې.

> وَلَايُضِيْفُ أَحَدَ الْخَصْمَيْنِ دُوْنَ خَصْمِهِ او قاضي به په مدعی او مدعی علیه کې دیوکس دعوت د بل کس نه بغیر نه کوی. لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ذٰلِكَ (١)ځکه رسول الله ﷺ ددې نه منع فرمائیلې ده. وَلِأَنَّ فِيْهِ تُهْمَةً او ځکه چې په داسې کولوکې تهمت دې.

حل اللغة: ① یضیف-میلمه کوی-② نهی-منع کړې ده-③ خصم-جګړه کونکې-④ تهمة-تهمت

تشریح:- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.چه قاضی به داسې هم نه کوی.چه په مدعی او مدعی علیه کې د یو دعوت اوکړی.اود بل دعوت اونکړی.ځکه ① د حضرت علی رضی الله عنه حدیث دې. ﴿أنه قال نهانا رسول الله ﷺ أن نضيف الخصم إلا أن يكون خصمه معه﴾ حضرت علی رضی الله عنه فرمائی.چه رسول الله ﷺ موږ منع کړی یو.چه موږ د خصم ملمستیا اوکړو.مګردا چې دده سره دده خصم هم وی.(نو خیردې) یعنی په مدعی اومدعی علیه کې د یو کس د دعوت نه منع شوې ده.خوکه ددې دواړو دعوت اوکړی.نو هیڅ باك نشته.② دوهم دلیل دادې.چه په داسې کولوکې به قاضی متهم کیږی.یعنی خلګ به دا خیال کوی.چه قاضی ددې سرې (مدعی یا مدعی علیه) اړخ ته مائل دې.

## قاضی لپاره ګواهانو ته د تلقین کولو حکم

> قَالَ وَإِذَا حَضَرَا فرمائی.اوکله چې (مدعی او مدعی علیه) دواړه حاضر شی. سَوَّى بَيْنَهُمَا فِي الْجُلُوْسِ وَالْإِقْبَالِ نو قاضی به د دواړو په منځ کې کینی.او په توجه کاوه کې به برابری کوی.

حل اللغة: سوی-برابروی-الجلوس-ناسته-الاقبال-خیال ساتل

تشریح:- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.چه کله مدعی اومدعی علیه دواړه حاضر وی.نو په ناسته او توجه کولوکې دې د دواړو په منځ کې کینی.یعنی په ناسته کې دې یو ته په بل باندې فضیلت ورنکړی.بلکه دواړو لپاره دې برابری وی.تردې که یوکس په مسند (ګدئ) باندې کینول مناسب وی.نو دوهم دې هم دغه ډول کینوی.او یو ښی او بل چپه (چپ) اړخ ته دې هم نه کینوی.ځکه چې ښی اړخ والا ته په چپه اړخ والا باندې یو ډول فضیلت حاصل دې په دې وجه به په دې صورت کې برابری حاصل نشی.او قاضی به دواړه یو اړخ ته هم نه کینوی.ځکه چې په دې صورت کې به یو قاضی ته زیات نږدې وی.او یو به کم نږدې وی.نو په دې صورت کې به هم برابری قائم پاتې نشی.مناسب داده.چه مدعی او مدعی علیه دواړه قاضی ته مخکې په مخکه کینی.دغه ډول دواړو اړخ ته په کتلو او توجه کاوه کې دې هم برابری اوکړی.یعنی قاضی دې دواړو اړخ ته برابر متوجه وی.او دواړو ته دې یوشان ګوری.

> لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {إِذَا ابْتُلِيَ أَحَدُكُمْ بِالْقَضَاءِ دلیل دا دې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه کله په تاسوکې څوك په قضاء کې اخته وی. فَلْيُسَوِّ بَيْنَهُمْ فِي الْمَجْلِسِ وَالْإِشَارَةِ وَالنَّظَرِ} (٢)نود خصوم په منځ کې دې کینی.په اشاره کاوه او نظرکولوکې دې برابری کوی. وَلَا يُسَارُّ أَحَدَهُمَا وَلَا يُشِيْرُ إِلَيْهِ وَلَا يُلَقِّنُهُ حُجَّةً لِلتُّهْمَةِ اود تهمت په وجه به په دوی دواړوکې دیو کس سره په غوږ کې خبره نه کوی.اونه به یوکس اړخ ته اشاره کوی.اونه به ده ته د حجت تلقین کوی.

(٣٧٣) من حديث علي رضي الله عنه أخرجه إسحاق بن راهويه رحمه الله في مسنده ورواه عبدالرزاق في مصنفه والدارقطني في كتاب المؤتلف والمختلف كذا في نصب الراية (١٤٦/٤)_

(١) من حديث أم سلمة رضي الله عنها أخرجه الطبراني في معجمه الكبير وأشار إليه الهيثمي في مجمع الزوائد (١٩٤/٤)_



حل اللغة: ① ابتلی-اخته شی-② یسو-برابری دې کوی-③ یسار-کښت خبرې کوی ④ في المجلس-په ناسته کې -⑤ لایشیر-اشاره دې نه کوی-⑥ یلقن-خودنه کوی

تشریح:- دلیل د حضرت ام سلمه رضی الله عنها حدیث دې.ام سلمه رضی الله عنها فرمائی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه کوم کس په مسلمانانوکې د قضاء په منصب سره اخته کړې شو.دې دې د فریقینو په منځ کې کیناستلو، اشاره کولو،او په کتلوکې برابری اوکړی.او په احدالخصمین دې د دوهم نه زیات آواز اوچت نکړی.ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.چه قاضی دې د یو سره کښت کښت خبرې نه کوی.او پخپل لاس، یا سر یا وریځو سره دې اشاره نه کوی.اونه دې ده ته د حجت تلقین کوی.ځکه چې په داسې کولوکې قاضی په رشوت او طرفدارئ سره متهم کیداې شی.نود تهمت نه د بچ کیدلو لپاره دې ذکرشوی کارونو نه ځان بچ اوساتی.

> وَلِأَنَّ فِيْهِ مَكْسَرَةً لِقَلْبِ الْآخَرِ او ځکه چې په داسې کولوکې د بل کس زړه ماتیږی. فَيَتْرُكُ حَقَّهُ نودې به خپل حق پریږدی. وَلَا يَضْحَكُ فِي وَجْهِ أَحَدِهِمَا و قاضی به په دې دواړوکې یوته مخکې نه خاندی. لِأَنَّهُ يَجْتَرِئُ عَلَى خَصْمِهِ ځکه چې دې به پخپل خصم باندې زړه ور شی. وَلَا يُمَازِحُهُمْ اونه به ټولو خصومو سره خوش طبیعتی (ټوقې ټقالې) کوی. وَلَا وَاحِدًا مِنْهُمْ ونه به په دوی کې دیو (خصم) سره خوش طبیعتی کوی. لِأَنَّهُ يُذْهِبُ بِمَهَابَةِ الْقَضَاءِ ځکه چې خوش طبیعتی کول د قضاء هیبت ختموی.

حل اللغة: ① مکسرة-ماتول -② قلب-زړه -③ یضحک- خاندی ④ یجترئ-زړه ورکیږی-⑤ لایمازح-ټوقې دې نه کوی-⑥ مهابة-رعب، دبدبه

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه په داسې کولوکې د دوهم کس زړه ماتیږی.(او همت ختمیږی).ځکه به دې خپل حق پریږدی.یعنی کله چې دې دا خیال اوکړی.چه د قاضی طبعی میلان زما خصم اړخ ته دې.نود قاضی څخه به د انصاف امید نه ساتی.او خپل حق به پریږدی.او قاضی دې په فریقینو کې یو اړخ ته په کتلو سره نه خاندی.اونه دې مسکې کیږی.چه کوم فریق اړخ په کتلو سره چې قاضی خاندلی دی.په بل فریق به زړه ور شی.او ددې په وجه به د دوهم فریق همت کمیږی.او قاضی دې فریقینو سره یا په دوی کې د یوکس سره مذاق (ټوقې، مسخرې) هم نه کوی.ځکه چې ټوقې ټقالې او مسخرې کول د قضاء د منصب رعب او هیبت ختموی.حالانکه د قاضی لپاره رعب دار (دبدبې والا) او باعزته کیدل ضروری دی.

## قاضی لپاره ګواهانو ته د تلقین کولو حکم

> قَالَ وَيُكْرَهُ تَلْقِيْنُ الشَّاهِدِ فرمائی.او ګواه ته تلقین کول مکروه دی. وَمَعْنَاهُ أَنْ يَقُوْلَ لَهُ أَتَشْهَدُ بِكَذَا وَكَذَا او ددې مطلب دادې.چه ګواه ته اووائی.آیا ته د داسې خبرې ګواه یې. وَهٰذَا لِأَنَّهُ إِعَانَةٌ لِأَحَدِ الْخَصْمَيْنِ اودا ځکه (مکروه دی) چې دا د احدالخصمین اعانت (مدد) کول دی. فَيُكْرَهُ كَتَلْقِيْنِ الْخَصْمِ نودا پخپله خصم ته تلقین کاوه پشان مکروه دی.

حل اللغة: ① تلقین-ښودنه-② اعانة-مدد-③ یکره-مکروه دې-④ خصم-جګړه کونکې

تشریح:- تلقین: قاضی به داسې خبره کوی.چه په دې سره ګواهان هغه شئ حاصل کړی.کوم چې د شبهاتو سره متعلق دې.مثلاً قاضی ګواه ته اووائی.چه آیا ته د فلانئ خبرې ګواه ئې.بهرحال ګواه ته داسې قسمه تلقین کول مکروه دی.اود کراهت وجه داده.چه په دې کې فریقینو کې د یو کومك کول لازمیږی.نولکه څنګه چې پخپله فریقینوکې یو فریق ته تلقین کول مکروه دې.دغه ډول ګواهانو ته تلقین کول هم مکروه دی.

> وَاسْتَحْسَنَهُ أَبُوْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِيْ غَيْرِ مَوْضِعِ التُّهْمَةِ (١) اود امام ابویوسف رحمه الله نه د تهمت د ځایونو نه علاوه کې دا مستحسن

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في مجمع الأنهر (٢٢٢/٣) والعناية (٦٣٧٤) والدرالمختار (٣٤٧/٤) نقلاً عن القول الراجح (١٠٧/٢)-

ګرځولي دي. لِأَنَّ الشَّاهِدَ قَدْ يَحْصُرُ لِمَهَابَةِ الْمَجْلِسِ ځکه چې کله کله ګواه د عدالت د هيبت نه منع کيږي. فَكَانَ تَلْقِينُهُ إِحْيَاءً لِلْحَقِّ نو ده ته تلقين کول به حق ژوندی کول وي. بِمَنْزِلَةِ الْإِشْخَاصِ لکه يو سړي (د احدالخصمين راغوښتلو دپاره) ليګل وَالتَّكْفِيلِ اود احدالخصمين نه کفيل اخستل.

**حل اللغة:** ① **استحن**-ښه ګڼړلي دي-② **موضع**-ځائي-③ **احياء**-ژوندی کول-④ **اشخاص**-راغوښتلو

**تشريح:**- حضرت امام ابويوسف ﷫ فرمائي چه د تهمت د ځايونو نه علاوه کي ګواه ته تلقين کول مستحسن دي.ځکه چې قضاء د خلګو حقونه ژوندی کاوه لپاره مشروع شوي ده.او ګواه کله کله د عدالت د هيبت او رعب په وجه بيانولو نه منع کيږي.نو په داسې صورت کي ګواهانو ته تلقين کول د انساني حق ژوندی کاوه لپاره دی.لکه يو کس په فريقينوکي د يو راغوښتلو لپاره ليګل.اود احدالخصمين نه د دوهم لپاره کفيل اخستل.دا اعانت مستحسن دي.دغه ډول د تهمت نه علاوه ځايونوکي ګواهانو ته د تلقين کاوه په ذريعه کومک کول هم مستحسن دي.د تهمت د ځائي مثال دادي.چه مدعی د پنځلس سوه درهمو دعوه اوکړله.او مدعی عليه د پنځه سوه درهمو انکار اوکړو.او ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړله.نو که قاضي اووئيل.چه کيداي شي.مدعی پنځه سوه درهم معاف کړي وي.نو په دې سره به ګواه خبر شي.او خپله ګواهي به صحيح کړي.نو داسې تلقين بالاتفاق ناجائز دي.

## فصل في الحبس

(دا) فصل (په قيدخانه کي) د قيد کولو (په بيان کي) دي.

**تشريح:**- دقاضي د فيصلې نه روسته مجرم قيد ته ليږلي شی ددې امله ئې په کتاب ادب القاضي کي په مستقل فصل کی د حبس يعنی قيد ذکر اوکړلو.

**ثبوت الحبس من ادلة الشرع** ① حبس او قيد په کتاب الله سره ثابت دي د الله تعالی ارشاد دي ﴿أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ﴾ کي د نفي نه مراد حبس او قيد دي.② د سنت هم د حبس ثبوت کيږي لکه ثمامه بن آثال چې نبی ﷺ په جمات کي قيد کړي وو البته دا ده چې د نبی کريم ﷺ او صديق اکبر ﷛ په زمانه کي باقاعده قيدخانې موجود نه وې.که د يوکس محبوس کاوه اړتيا به پيدا شو.نو په جومات يا دُرشل (يعنی دروآزه) کي به ئې قيد کولو.فاروق اعظم ﷛ په خپل دورخلافت کي په مکه مکرمه کي يو کور په څلور زره درهمه باندې واخستلو.او قيدخانه ئې تري نه جوړه کړله.اود بعض حضراتو خيال دي چه د حضرت عمر او حضرت عثمان ﷛ په زمانه کي هم باقاعده قيدخانې موجود نه وې بلکه د ټولو نه وړاندې حضرت علي ﷛ جيل خانه جوړه کړله.علامه ابن الهمام ﷫ د فائق په حواله سره ليکلی دی.چه حضرت علي ﷛ د بانړس وغيره يو قيدخانه جوړه کړله.او ددې نوم ئې ،،مخيّس،، تجويز کړو.③ عقلاً هم د قيدخانې مشروعيت ثابت دي.په دې طريقه چې د قاضي اصل کار خلګو ته ددوی حقونه رسول دی.خو که مطلوب د طالب د حق نه منع شو.نو قاضي به دې د حق په ادا کاوه باندې مجبوره کوی.او په دې باندې د ټولو اتفاق دي.چه د وهلو ټ کاوه په ذريعه به زبردستي نشی کولې.نود حبس او قيد په ذريعه به زبردستي غوره وی.او هرکله چې د حبس او قيد په ذريعه زبردستي کولې شي.نود جيل ځانې او قيدخانې جوړول به هم مشروع وی.

### قاضي لپاره په قيدکښې د اچولو هدايات

قَالَ وَإِذَا ثَبَتَ الْحَقُّ عِنْدَ الْقَاضِي فرمائي.اوکله چې د قاضي په نيز حق ثابت شو. وَطَلَبَ صَاحِبُ الْحَقِّ حَبْسَ غَرِيمِهِ او صاحب حق د خپل قرضدار قيدکول طلب کړل. لَمْ يُعَجِّلْ بِحَبْسِهِ نو دده په قيدکولوکي به جلتي نه کوی. وَأَمَرَهُ بِدَفْعِ مَا او قرضدار ته به حکم اوکړي.چه څه په ده باندې دی.هغه ورکړي.

**حل اللغة:** ① **ثبت**-ثابت شي-② **حبس**-بندبه کړې شي-③ **غريم**-قرضدار-④ **دفع**-ورکول

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.چه کله د صاحب حق، حق د قاضي په نيز ثابت شي.او صاحب حق د خپل قرضدار



ګرفتارولو مطالبه اوکړي.نوکه د ده حق د اقرار په ذريعه ثابت وي.نو قاضي به د قرضدار په قيدکولوکي جلتي نه کوی.بلکه قرضدار ته به حکم ورکوی.چه دې صاحب حق قرضه اداکړي.قرضه که يو درهم وي.او که ددې نه کم وي.يا زيات وي.

لِأَنَّ الْحَبْسَ جَزَاءُ الْمُمَاطَلَةِ دليل دا دې چې قيدکول د ټال مواړه سزا ده. فَلَا بُدَّ مِنْ ظُهُورِهَا نود ټال مواړه ښکاره کيدل ضروری دی. وَهٰذَا إِذَا ثَبَتَ الْحَقُّ بِإِقْرَارِهِ لِأَنَّهُ لَمْ يُعْرَفْ كَوْنُهُ مُمَاطِلًا فِي أَوَّلِ الْوَهْلَةِ اودا هغه وخت دی کله چې د مدعی عليه په اقرار سره حق ثابت شوی وی. فَلَعَلَّهُ طَمِعَ فِي الْإِمْهَالِ نو شايد ده د مهلت موندلو ګمان کړی وی. فَلَمْ يَسْتَصْحِبِ الْمَالَ او مال ئې د ځان سره نه وی راوړلي. فَإِذَا امْتَنَعَ بَعْدَ ذٰلِكَ حَبَسَهُ بيا کله چې ددې نه روسته ده انکار اوکړو.نودې به قيدکوی. لِظُهُورِ مَطْلِهِ ځکه چې دده ټال مواړه کول ښکاره شو.

**حل اللغة:** ① **جزاء**-بدله-② **مماطلة**-ټال متبول-③ **ظهور**-ښکاره کيدل-④ **الوهلة**-حالت ⑤ **طمع** -اميد-⑥ **الامهال**-مهلت ورکول-⑦ **يستصحب**- انډيوال کيدل-⑧ **امتنع**-منع شو

**تشريح:**- دليل دادې.چه قيد او جيل د ټال مواړه سزا ده.نو په قيد کاوه سره د قرضدار د اړخه ټال مواړه ښکاره کول ضروری دی.نوهرکله چې د قرضدار د اقرار په وجه د صاحب حق ، حق ثابت شو.نو په پيل کي به دده د اړخه ټال مواړه نه ښکاره کيږي.ځکه دې به دا وائي.چه ماته د مهلت ملاويدلو اميد وو.په دې وجه ما د ځان سره مال رانوړو.اوس که تاسو د مهلت ور کاوه نه انکار کوئ.نو زه ستاسو حق اداکوم.خوکه د صاحب حق، حق ثابتيدلو نه روسته قرضدار دده د حق ادا کاوه نه منع شو.نو په دې صورت کي چونکه د قرضدار د اړخه ټال مواړه اوموندې شو.ځکه به قاضي دې قيدکوی.

أَمَّا إِذَا ثَبَتَ بِالْبَيِّنَةِ حَبَسَهُ اوکه حق د ګواهانو په ذريعه ثابت شو.نو قاضي به دې په حق ثابتولو سره فوراً قيد کوی. كَمَا ثَبَتَ لِظُهُورِ الْمَطْلِ بِإِنْكَارِهِ ځکه چې دده د انکار کاوه په وجه ټال مواړه کول ښکاره شو.

**حل اللغة:** ① **ثبت**-ثابت شو-② **البينة**-ګواهان-③ **حبس**-بنديز-④ **المطل**-ټال متبول

**تشريح:**- اوکه حق د ګواهانو په ذريعه ثابت شوې وی.نو قاضي په حق ثابتيدلو سره فوراً قرضدار قيد کولې شی.ځکه چې د ګواهانو په ذريعه حق هغه وخت ثابتولې شی.کله چې مدعی عليه د حق منکر وی.نو کله چې مدعی عليه يعنی قرضدار د پور انکار اوکړو.نو دې ټال مواړه کونکې شو.اود ټال مواړه سزا چونکه قيد ده.په دې وجه حق ثابتيدلو سره فوراً قرضدار قيدکولې شی.علامه ابن الهمام ﷫ ليکلی دی.چه د شمس الائمه سرخسي ﷫ په نيز ددې په عکس دې.يعنی حق د بينه په ذريعه ثابتيدلو په صورت کي په اول ځل (شروع) کي قرضدار نشی قيدکولې.اوپه اقرار سره د ثابتيدلو په صورت کي فوراً قيد کولې شی.او وجه ئې دا بيان کړې ده.چه د بينه په ذريعه ثابتيدلو په صورت کي قرضدار دا وئيلې شی.چه ماته معلومه نه وه.چه په ما باندې پور دې.خو کله چې اوس معلومه شوه.چه په ما باندې پور دې.نو اوس به ددې په ادا کاوه کي سستي نه کووم.نو ددې عذر نه روسته دا نشی وئيلې.چه د قرضداری د اړخه ټال مواړه اوموندې شو.او هرکله چې ټال مواړه اونه موندې شو.نو دې قيد کولې هم نشی.خود اقرار په صورت کي قرضدار دا عذر نشی پيش کولې.او هرکله چې دا عذر نشی پيش کولې.نود ټال مواړه کاوه په وجه به دې قيد کولې شی.

### د پور په عوض کښې د قيدکولو حکم

قَالَ فَإِنِ امْتَنَعَ فرمائي.بيا که دې (د اداکولونه) منع شو. حَبَسَهُ فِي كُلِّ دَيْنٍ لَزِمَهُ بَدَلًا عَنْ مَالٍ حَصَلَ فِي يَدِهِ نودې به په هر داسې قرضه کي قيد کوی.کوم چې دداسې مال عوض وی.کوم چې دده په قبضه کی حاصل شوی دي. كَثَمَنِ الْمَبِيعِ لکه د مبيع ثمن ، أَوِ الْتَزَمَهُ بِعَقْدٍ يائې عقد سره دا لازم کړې دي. كَالْمَهْرِ وَالْكَفَالَةِ لکه مهر او کفالة مال،

**حل اللغة:** ① **دين**-قرض-② **لزم**-لازم شو-③ **ثمن**-قيمت-④ **عقد**-معاهده

ګرځولي دي. لِأَنَّ الشَّاهِدَ قَدْ يَحْصُرُ لِمَهَابَةِ الْمَجْلِسِ ځکه چې کله کله ګواه د عدالت د هيبت نه منع کيږي. فَكَانَ تَلْقِينُهُ إِحْيَاءً لِلْحَقِّ نو ده ته تلقين کول به حق ژوندی کول وي. بِمَنْزِلَةِ الْإِشْخَاصِ لکه يو سړي ( د احد الخصمين راغوښتلو دپاره) ليګل. وَالتَّكْفِيلِ اود احد الخصمين نه کفيل اخستل.

**حل اللغة:** ① **استحن**-ښه ګڼړلي دي-② **موضع**-ځاي -③ **احياء**-ژوندی کول-④ **اشخاص**-راغوښتلو

**تشريح:-** حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرماني، چه د تهمت د ځايونو نه علاوه کي ګواه ته تلقين کول مستحسن دی. ځکه چې قضاء د خلګو حقونه ژوندی کاوه لپاره مشروع شوي ده. او ګواه کله کله د عدالت د هيبت او رعب په وجه بيانولو نه منع کيږي. نو په داسې صورت کي ګواهانو ته تلقين کول د انساني حق ژوندی کاوه لپاره دی لکه يو کس په فريقينوکي د يو راغوښتلو لپاره ليګل. اود احد الخصمين نه د دوهم لپاره کفيل اخستل. دا اعانت مستحسن دې. دغه ډول د تهمت نه علاوه ځايونوکي ګواهانو ته د تلقين کاوه په ذريعه کومك کول هم مستحن دی. د تهمت د ځاي مثال دادې. چه مدعی د پنځلس سوه درهمو دعوه اوکړله. او مدعی عليه د پنځه سوه درهمو انکار اوکړو. او ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړله. نو که قاضي اووئيل چه کيداې شي. مدعي پنځه سوه درهم معاف کړي وي. نو په دې سره به ګواه خبر شي. او خپله ګواهي به صحيح کړي. نو داسې تلقين بالاتفاق ناجائز دې.

## فصل في الحبس

( دا ) فصل ( په قيدخانه کي ) د قيد کولو ( په بيان کي ) دې.

**تشريح:-** دقاضي د فيصلې نه روسته مجرم قيد ته ليږلې شي ددې امله ئې په کتاب ادب القاضي کي په مستقل فصل کي د حبس يعني قيد ذکر اوکړلو.

**ثبوت الحبس من ادلة السرع:** ① حبس او قيد په کتاب الله سره ثابت دې د الله تعالی ارشاد دې ﴿أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ﴾ کي د نفي نه مراد حبس او قيد دې. ② د سنت هم د حبس ثبوت کيږي لکه ثمامه بن آثال چې نبي صلی الله عليه وسلم په جمات کي قيد کړې وو البته دا ده چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم او صديق اکبر رضی الله عنه په زمانه کي باقاعده قيدخانې موجود نه وې. که د يو کس محبوس کاوه اړتيا به پيدا شو. نو په جومات يا دُرشل ( يعني دروازه) کي به ئې قيد کولو. فاروق اعظم رضی الله عنه په خپل دورخلافت کي په مکه مکرمه کي يو کور په ځلور زره درهمه باندې واخستلو. او قيدخانه ئې تري نه جوړه کړله. اود بعض حضراتو خيال دې، چه د حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهما په زمانه کي هم باقاعده قيدخانې موجود نه وې. بلکه د ټولو نه وړاندې حضرت علي رضی الله عنه جيل خانه جوړه کړله. علامه ابن الهمام رحمه الله د فائق په حواله سره ليکلي دی، چه حضرت علي رضی الله عنه د بانړس وغيره يو قيدخانه جوړه کړله. او ددې نوم ئې ،،مخيس،، تجويز کړو. ③ عقلاً هم د قيدخانې مشروعيت ثابت دې، په دې طريقه چې د قاضي اصل کار خلګو ته ددوی حقونه رسول دی. خو که مطلوب د طالب د حق نه منع شو. نو قاضي به دې د حق په ادا کاوه باندې مجبوره کوی. او په دې باندې د ټولو اتفاق دې. چه د وهلو ټ کاوه په ذريعه به زبردستي نشی کولې. نود حبس او قيد په ذريعه به زبردستي غوره وی. او هرکله چې د حبس او قيد په ذريعه زبردستي کولې شی. نود جيل خانې او قيدخانې جوړول به هم مشروع وی.

### قاضي لپاره په قيدکښې د اچولو هدايات

قَالَ وَإِذَا ثَبَتَ الْحَقُّ عِنْدَ الْقَاضِي فرماني. اوکله چې د قاضي په نيز حق ثابت شو. وَطَلَبَ صَاحِبُ الْحَقِّ حَبْسَ غَرِيمِهِ او صاحب حق د خپل قرضدار قيدکول طلب کړل. لَمْ يُعَجِّلْ بِحَبْسِهِ نو دده په قيدکولوکي به جلتي نه کوی. وَأَمَرَهُ بِدَفْعِ مَا عَلَيْهِ او قرضدار ته به حکم اوکړي، چه څه په ده باندې دی. هغه ورکړي.

**حل اللغة:** ① **ثبت**-ثابت شي-② **حبس**-بندبه کړې شي-③ **غريم**-قرضدار-④ **دفع**-ورکول

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې، چه کله د صاحب حق، حق د قاضي په نيز ثابت شي. او صاحب حق د خپل قرضدار



ګرفتارولو مطالبه اوکړي. نوکه د ده حق د اقرار په ذريعه ثابت وي. نو قاضي به د قرضدار په قيدکولوکي جلتي نه کوی. بلکه قرضدار ته به حکم ورکوی. چه دې صاحب حق قرضه اداکړي. قرضه که يو درهم وي. او که ددې نه کم وي. يا زيات وي.

لِأَنَّ الْحَبْسَ جَزَاءُ الْمُمَاطَلَةِ دليل دا دې چې قيدکول د ټال مټول سزا ده. فَلَا بُدَّ مِنْ ظُهُورِهَا نود ټال مټوله ښکاره کيدل ضروري دی. وَهٰذَا إِذَا ثَبَتَ الْحَقُّ بِإِقْرَارِهِ لِأَنَّهُ لَمْ يُعْرَفْ كَوْنُهُ مُمَاطِلًا فِي أَوَّلِ الْوَهْلَةِ اودا هغه وخت دی کله چې د مدعی عليه په اقرار سره حق ثابت شوی وی. فَلَعَلَّهُ طَمِعَ فِي الْإِمْهَالِ نو شايد ده د مهلت موندلو ګمان کړی وی. فَلَمْ يَسْتَصْحِبِ الْمَالَ او مال ئې د ځان سره نه وی راوړلې. فَإِذَا امْتَنَعَ بَعْدَ ذٰلِكَ حَبَسَهُ بيا کله چې ددې نه روسته ده انکار اوکړو. نودې به قيدکوی. لِظُهُورِ مَطْلِهِ ځکه چې دده ټال مټوله کول ښکاره شو.

**حل اللغة:** ① **جزاء**-بدلـه-② **مماطلة**-ټال متول-③ **ظهور**-ښکاره کيدل-④ **الوهلة**-حالت⑤ **طمع** -اميد-⑥ **الامهال**-مهلت ورکول-⑦ **يستصحب**- انډيوال کيدل-⑧ **امتنع**-منع شو

**تشريح:-** دليل دادې، چه قيد او جيل د ټال مټول سزا ده. نو په قيد کاوه سره د قرضدار د اړخه ټال مټول ښکاره کول ضروري دی. نو هرکله چې د قرضدار د اقرار په وجه د صاحب حق ، حق ثابت شو. نو په پيل کي به دده د اړخه ټال مټول نه ښکاره کيږي. ځکه دې به دا وائي، چه ماته د مهلت ملاويدلو اميد وو. په دې وجه ما د ځان سره مال رانوړو. اوس که تاسو د مهلت ور کاوه نه انکار کوئ. نو زه ستاسو حق اداکوم. خوکه د صاحب حق، حق ثابتيدلو نه روسته قرضدار دده د حق ادا کاوه نه منع شو. نو په دې صورت کي چونکه د قرضدار د اړخه ټال مټول اوموندې شو. ځکه به قاضي دې قيدکوی.

أَمَّا إِذَا ثَبَتَ بِالْبَيِّنَةِ حَبَسَهُ اوکه حق د ګواهانو په ذريعه ثابت شو. نو قاضي به دې په حق ثابتولو سره فوراً قيد کوی. كَمَا ثَبَتَ لِظُهُورِ الْمَطْلِ بِإِنْكَارِهِ ځکه چې دده د انکار کاوه په وجه ټال مټول ښکاره شو.

**حل اللغة:** ① **ثبت**-ثابت شو-② **البينة**-ګواهان-③ **حبس**-بنديز-④ **المطل**-ټال متول

**تشريح:-** اوکه حق د ګواهانو په ذريعه ثابت شوې وی. نو قاضي په حق ثابتيدلو سره فوراً قرضدار قيد کولې شی. ځکه چې د ګواهانو په ذريعه حق هغه وخت ثابتولې شی. کله چې مدعی عليه د حق منکر وی. نوکله چې مدعی عليه يعنی قرضدار د پور انکار اوکړو. نو دې ټال مټول کونکې شو. اود ټال مټول سزا چونکه قيد ده. په دې وجه حق ثابتيدلو سره فوراً قرضدار قيدکولې شی. علامه ابن الهمام رحمه الله ليکلی دی، چه د شمس الائمه سرخسي رحمه الله په نيز ددې په عکس دې. يعنی حق د بينه په ذريعه ثابتيدلو په صورت کي په اول ځل ( شروع) کي قرضدار نشی قيدکولې. او په اقرار سره د ثابتيدلو په صورت کي فوراً قيد کولې شی. او وجه ئې دا بيان کړې ده. چه د بينه په ذريعه ثابتيدلو په صورت کي قرضدار دا وئيلې شی. چه ماته معلومه نه وه. چه په ما باندې پور دې. خو کله چې اوس معلومه شوه. چه په ما باندې پور دې. نو اوس به ددې په ادا کاوه کي سستي نه کووم. نو ددې عذر نه روسته دا نشی وئيلې. چه د قرضداری د اړخه ټال مټول اوموندې شو. او هرکله چې ټال مټول اونه موندې شو. نو دې قيد کولې هم نشی. خود اقرار په صورت کي قرضدار دا عذر نشی پيش کولې. او هرکله چې دا عذر نشی پيش کولې. نود ټال مټول کاوه په وجه به دې قيد کولې شی.

### د پور په عوض کښې د قيدکولو حکم

قَالَ فَإِنِ امْتَنَعَ فرماني. بيا که دې ( د اداکولونه) منع شو. حَبَسَهُ فِي كُلِّ دَيْنٍ لَزِمَهُ بَدَلًا عَنْ مَالٍ حَصَلَ فِي يَدِهِ نودې به په هر داسې قرضه کي قيد کوی. کوم چې دداسې مال عوض وی. کوم چې دده په قبضه کي حاصل شوی دې. كَثَمَنِ الْمَبِيعِ لکه د مبيع ثمن ، أَوِ الْتَزَمَهُ بِعَقْدٍ يائې عقد سره دا لازم کړې دې. كَالْمَهْرِ وَالْكَفَالَةِ لکه مهر اود کفاله مال،

**حل اللغة:** ① **دين**-قرض-② **لزم**-لازم شو-③ **ثمن**-قيمت-④ **عقد**-معاهده

**تشریح:**- ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي، که د قاضي د حکم نه روسته قرضدار د پور ادا کاوه نه منع شو او قرضخواه دده د قید کاوه مطالبه اوکړله. نو قاضي به دې د هر داسې پور په بدله کې قید کوي. کوم چې دده پخپله قبضه کې اخستې دې لکه د مبیع ثمن، یعني په قرضدار اګرچه د ثمن قرضه واجب شوې ده. خو مبیع دده په قبضه کې راغلې دې یا داسې قرضه وي. کوم چې ده په عقد سره پخپل خان باندې لازم کړې ده. لکه په عقد نکاح سره ئې د مهر مال لازم کړې وي. یا ئې په عقد کفالة سره مال مکفول به لازم کړې وي.

لِأَنَّهُ إِذَا حَصَلَ الْمَالُ فِي يَدِهِ دلیل دا دې کله چې مال دده قبضه کې راغي: ثَبَتَ غِنَاهُ بِهِ، نو ددې مال په ذریعه دده مالداره کیدل ثابت شوي دی. وَإِقْدَامُهُ عَلَى الْتِزَامِهِ بِاخْتِيَارِهِ دَلِيلُ يَسَارِهِ او پخپل اختیار سره دمال په التزام باندې دده اقدام کول دده د مالداره کیدلو دلیل دې. إِذْ هُوَ لَا يَلْتَزِمُ ځکه چې دې به التزام نه کوي. إِلَّا مَا يَقْدِرُ عَلَى أَدَائِهِ مګر دهغه مال دکوم په اداکولو چې قادر دې. وَالْمُرَادُ بِالْمَهْرِ مُعَجَّلُهُ دُونَ مُؤَجَّلِهِ او مهر معجل مراد دې. مهر مؤجل مراد نه دې.

**حل اللغة:** ① غنا-مالداري-② یسار-مالداري-③ معجل-نقد-④ موجل-په نیته

**تشریح:**- دلیل دادې. چه هر کله د قرضدار په قبضه کې مال راغي: نو ددې مال په ذریعه دده مالداره کیدل ثابت شو. او کله چې توانګر د پور ادا کاوه نه منع کیږي. نو دې قید کولې شي. نو په دې قرضه کې به ذکر شوې قرضدار قید کولې شي. یعني دده څخه به مطالبه کولې شي. چه کوم مبیع دده په قبضه کې دې. دادې خرڅ کړي. اود بائع ثمن دې اداکړي. او پخپل اختیار سره خپل خان باندې د مال لازمولو اقدام کول، دده د مالداره کیدلو دلیل دې. ځکه چې انسان پخپل خان باندې دداسې مال التزام کوي. کوم چې دې اداکولې شي. نود مهر او کفالة مال کله چې ده په خپله ذمه اخستې دې. نو ګویا دا اداکولې شي. علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. چه په متن کې د مهر نه مراد مهر معجل دې. مهر مؤجل نه دې. ځکه چې عادةً مهر معجل سپارلې کیږي. مهر مؤجل نه سپارلې کیږي. نود مهر معجل نه ادا کاوه په صورت کې به قید کیږي. اود مهر مؤجل نه ادا کاوه په صورت کې به نه قید کیږي.

### د نه قیدکولو بعض امور

قَالَ وَلَا يَحْبِسُهُ فِيمَا سِوَى ذَلِكَ فرمائي. اود ذکر شوې پور څخه به علاوه کې قاضي دې نه قید کوي. إِذَا قَالَ إِنِّي فَقِيرٌ کله چې ده دا اووئیل. چه زه فقیر یم. إِلَّا أَنْ يُثْبِتَ غَرِيمُهُ أَنَّ لَهُ مَالًا مګر داچه دده قرضخواه دا ثابته کړي. چه دده سره مال موجود دې. فَيَحْبِسُهُ [1] نو قاضي به دې قید کوي.

**حل اللغة:** سوی-علاوه-غریم-قرضدار----

**تشریح:**- ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي. که په قرضدار باندې داسې قرضه وي. کومه چې د څه مال په عوض کې لازم شوې وي. یا د کوم عقد په وجه ئې ددې التزام کړې وي. او بیا قرضدار دا اووائي. چه زه فقیر یم. اود پور ادا کاوه نه منع شو. نو قاضي به دې قید کوي. خو ددې دواړو صورتونو نه په علاوه کې که قرضدار دا اووائي. چه زه فقیر یم. نو قاضي به دې نه قید کوي. خوکه ګواهانو دا ثابته کړله. چه دده سره مال موجود دې. نو قاضي به دې قید کوي. مثلاً یو سړي دچا مال تلف یا غصب سره ضائع کړو. یا په ده باندې څه تاوان واجب شو. بیا ده د عوی اوکړله. چه زه غریب یم. نو دده دا قول به قبلولې شي. او قاضي به دې نه قید کوي. خوکه قرضخواه اووئیل. چه داسې نه ده. بلکه ده ته د ادا کاوه قدرت حاصل دې. اوده دا خبره د بینه په ذریعه ثابت کړله. نو قاضي به دې قید کوي.

[1]) القول الراجح هو هذا القول الأول (من عدم الحبس الا ان يثبت الغريم وجود ماله) كذا في ردالمحتار (۳۵۲\۴) ومجمع الأنهر (۲۳۵\۳) والبحرالرائق (۲۸۵\۶) نقلاً عن القول الراجح (۱۱۰\۲)-



لِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ دَلَالَةُ الْيَسَارِ دلیل دا دې چې د مالدارئ دلیل اونه موندې شو. فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَ مَنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ، نو په چاچه قرضه ده. د هغه قول به قبول وي. وَعَلَى الْمُدَّعِي إِثْبَاتُ غِنَاهُ او په مدعي باندې دده مالداري ثابتول واجب دي.

**حل اللغة:** ① توجد-موجودیږی -② دلالة-نښه-③ الدین-قرض-④ غنا-مالداری

**تشریح:**- دلیل دادې. چه ترکومه پورې د قرضخواه د اړخه د قرضداری د مالداره کیدلو څه دلیل اونه موندې شي. ترهغه وخته پورې به دهغه کس قول معتبر وي. په چاچه قرضه ده. ځکه چې دې دخپل حال نه زیات خبر دې. صاحب البيت أدرى مافي البيت ﷺ خو کله چې قرضخواه په بینه سره د قرضدار توانګر کیدل ثابت کړل. نود مدعی علیه په ادا کاوه باندې قدرت حاصل شو. اوهرکله چې قرضدار د دین په ادا کاوه باندې قادر دې. خو ددې باوجود ئې ادانکړو. نودې به د ټال مواړه کاوه په وجه قید کولې شي.

وَيُرْوَى أَنَّ الْقَوْلَ لِمَنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ اوروایت کولی شي چه په ټولو صورتونو کې به د قرضدار قول معتبر وي. لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ الْعُسْرَةُ ځکه چې فقیري اصل ده.

**حل اللغة:** ① یروی-روایت کولې شي-القول-دعوی-جمیع -ټول-العسرة-تنګدستیا

**تشریح:**- علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. په یو روایت کې دي. چې په ټولو صورتونو کې ( که قرضه د کوم مال په عوض کې لازم شوې وي. یا ئې په عقد سره ددې التزام کړې وي. اوکه ددې نه علاوه وي) به د قرضدار قول معتبر وي. ځکه چې د سړي غریب کیدل اصل دې. او غریب کیدل اصل ځکه دی. چه مورزاده (پیدائشي) طور باندې سړي سره مال موجود نه وي. نود قرضداری دا وئیل، چه زه فقیر یم. د اصل مطابق دی. اود قرضخواه دا وئیل. چه دده سره مال موجود دې. خلاف اصل دی. اود چا قول چې د اصل مطابق وي. هغه ته مدعی علیه وائي. او دچا قول چې د اصل خلاف وي. هغه ته مدعي وائي. په دې وجه به قرضخواه مدعي او قرضدار به مدعی علیه وي. او مدعي سره د بینه نه موجود کیدلو په صورت کې د مدعی علیه قول مع الیمین معتبر وي. نود مدعی علیه یعني دقرضدار قول چې زه غریب یم. مع الیمین به معتبر وي. خوکه مدعي یعني قرضخواه د بینه په ذریعه د قرضداری توانګر کیدل ثابت کړل. نو په دې صورت کې به د قرضخواه قول معتبر نه وي.

وَيُرْوَى أَنَّ الْقَوْلَ لَهُ او دا روایت هم کولې شي. چه د قرضدار قول معتبر دې. إِلَّا فِيمَا بَدَلُهُ مَالٌ خو به داسې صورت کې په کوم کې چې ددې عوض مال وي.

**تشریح:**- او په یو روایت کې دي. که په قرضدار باندې قرضه د څه مال په عوض کې لازم شوې وي. نو په دې صورت کې به د قرضدار قول (چې زه غریب یم) قبول نه وي. خو ددې نه علاوه به په ټولو صورتونو کې قبول وي.

وَفِي النَّفَقَةِ الْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ إِنَّهُ مُعْسِرٌ، او په نفقه کې به د میړه دا قول معتبر وي. چه زه فقیر یم. وَفِي إِعْتَاقِ الْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ الْقَوْلُ لِلْمُعْتِقِ اود مشترك غلام آزادولو په صورت کې به د آزادونکی قول قبول وي.

**حل اللغة:** نفقة-خرچه-الزوج-خاوند-معسر-غریب-الاعتاق-ازادول

**تشریح:**- د ښځې د نفقې په سلسله کې په کتاب النکاح کې ذکر دی. که ښځې په خپل میړه باندې دعوه اوکړله. چه دې توانګر دې. او ماته د مالدارو پشان نفقه پکار ده. او میړه دعوه اوکړله. چه زه فقیر یم. نو په ما باندې د فقیرانو پشان نفقه واجبول پکار دی. نود میړه قول چونکه د اصل موافق دې. په دې وجه به دده قول معتبر وي. خوکه ښځې د بینه په ذریعه د خپل میړه مالداره کیدل ثابت کړل. نود میړه قول به معتبر نه وي. او په کتاب العتاق کې ذکر دی. که یو غلام د دوې (دوه) سړو په منځ کې مشترك وي. او په دوی کې یوکس خپله برخه آزاده کړله. اود خپلې فقیرئ دعوه ئې اوکړله. چه د خپل شریك لپاره د غلام د نیمې برخې (حصې) د قیمت ضامن نه شم. او دوهم شریك دعوه اوکړله. چه دې توانګر دې. نو زما د برخې (حصې) تاوان دې اداکړي. نو کوم شریك چې خپله برخه آزاده کړې ده. د فقیرئ کیدلو په سلسله کې به دده قول معتبر وي. ځکه چې دده قول د اصل موافق دې. خو که دوهم شریك د

بينه په ذريعه دده توانګر كيدل ثابت كړل.نو په دې صورت كې به دده قول معتبر وي.او په معتق به تاوان واجبولې شي.

> وَالْمَسْأَلَتَانِ تُؤَيِّدَانِ الْقَوْلَيْنِ الْأَخِيرَيْنِ اودا دواړه مسئلې د روستنو دواړو قولونو تائيد كوي.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دا دواړه مسئلې (يعنى مسئله د نفقې،اود عبدمشترك د آزادولو مسئله) د آخرى د دواړو اقوالو تائيد كوي.اوقول اول كوم چې په متن كې ذكر دې.ددې مخالف دې.دا دواړه مسئلې د قول اول مخالف ځكه دي.چه په قول اول كې ونيلې شوي دي.كه په قرضدار باندې داسې قرضه لازم وي.چه ددې په عوض كې ده ته مال ملاؤ شوې وي.يا ده د عقد په ذريعه خپل ځان باندې مال لازم كړې وي.نو په دې صورتونوكې كه قرضدار د خپل فقيركيدلو دعوه اوكړله.نود فقيرئ په سلسله كې به د قرضدارانو قول معتبر نه وي.بلكه د قرضخواه قول (چې دې توانګر دې) به معتبر وي.حالانكه په ذكرشوي دواړه مسئلوكې په رومبۍ مسئله كې ميړه د عقدنكاح په ذريعه خپل ځان باندې نفقه لازم كړې ده.او په دويمه مسئله كې احدالشريكين د خپلې برخې (حصې) آزادولو باندې اقدام كړې دې.خو ددې باوجود د فقيرئ په سلسله كې د ميړه قول اود آزادونكى شريك قول معتبر دې.كه دا دواړه مسئلې د رومبى قول موافق وې.نود مالدارئ په دعوه كې به د ښځې اود ساكت شريك قول معتبر وو.نو ثابته شوه.چه دا دواړه مسئلې د رومبى قول مخالف دي.اوهركله چې د رومبى قول مخالف دي.نو قدرتي طور باندې به د آخرى د دواړو اقوالو موافق وي.

> وَالتَّخْرِيجُ عَلَى مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ أَنَّهُ لَيْسَ بِدَيْنٍ مُطْلَقٍ او تخريج ددې مطابق كوم چې په كتاب كې ونيلې شوي دي.دادې.چه دا قرضه مطلق نه ده. بَلْ هُوَ صِلَةٌ حَتَّى تَسْقُطَ النَّفَقَةُ بِالْمَوْتِ عَلَى الِاتِّفَاقِ،بلكه دا يوه صله ده.تردې چې دا بالاتفاق د مرګ په وجه ساقطيږي. وَكَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ ضَمَانُ الْإِعْتَاقِ اوهم دغه ډول د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ضمان اعتاق دې.

**حل اللغة:** التخريج-مستنبط كول-تسقط-ساقطيږي-الموت-مرګ-ضمان-ضمانت\تاوان

**تشريح:-** په دې عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله د ذكرشوې دواړه مسئلو تاويل په داسې انداز كې فرمائيلې دې.چه په دې سره په رومبى قول باندې څه نقض نه واردېږي.اودا دواړه مسئلې د قول اول مخالف نشوې.فرمائي.چه د قدورى عبارت «لا حبسه فكل دين لزمه بدلاً عن مال او التزمه بعقد» كې د دين نه مراد دين مطلق دې.او دين مطلق ته دين صحيح ونيلې شي.دين مطلق او دين صحيح هغه دين ته وائي.چه دا يا په ادا كاوه سره ساقط كيږي.اويا د صاحب حق په برى كاوه سره ساقط شي.بهرحال د قدورى په عبارت كې د دين نه مراد دين مطلق دې.او په ذكرشوې دواړه مسئلوكې يعنى د نفقه په مسئله كې نفقه دين مطلق نه دې.بلكه د ميړه د اړخه يوه صله ده.چه د ميړه په مرګ سره بالاتفاق نفقه ساقط كيږي.اوهم دغه ډول په دويمه مسئله كې دمشترك غلام آزادولو تاوان دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دين مطلق نه دې.نوهركله چې په قول اول يعنى د قدورى په عبارت كې د دين نه مراد دين مطلق دې.او په دې دواړه مسئلوكې نفقه اود اعتاق ضمان دين مطلق نه دې.نودا دواړه مسئلې د قول اول موافق ځنګه كيداې شي.او په دې دواړو مسئلوكې قول اول باندې ځنګه نقض وارد كيداې شي.

> ثُمَّ فِيمَا كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ الْمُدَّعِي إِنَّ لَهُ مَالًا بيا په هغه صورت كې چې د مدعى قول معتبر وي.چه مدعى عليه سره مال دې. أَوْ ثَبَتَ ذَلِكَ بِالْبَيِّنَةِ فِيمَا كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ مَنْ عَلَيْهِ ياد قرضدار قول قبلولو په صورت كې د بينه په ذريعه دمال دده حال معلوموي. يَحْبِسُهُ شَهْرَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً نو قاضى به دې دوې (دوه) درې مياشتې قيد كوي. ثُمَّ يَسْأَلُ عَنْهُ بيا به

**حل اللغة:** شهرين-دوې (دوه) مياشتې-ثلاثة-درې-يسال-پوښتنه كوي-ظهور-ښكاره كيدل

> فَالْحَبْسُ لِظُهُورِ ظُلْمِهِ فِي الْحَالِ نو محبوس كول في الحال دده د ظلم ښكاره كاوه په وجه دي.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په كوم صورت كې د قرضخواه قول (چې قرضدار توانګر دې) معتبر وي.يا



په كوم صورت كې د قرضدار قول (چې زه فقير يم) معتبر وي.خو قرضخواه د بينه په ذريعه ثابت كړي.چه دده سره مال موجود دې.نو په دې دواړو صورتونوكې به قاضى قرضدار ددوې (دوه) يا درې مياشتو لپاره قيد كړي.بيا به دده د ګاونډيانو اود متعلقينو خلګو نه دده د فقيرئ او مالدارئ په اړه كې پوښتنه اوكړي.چه دا قرضدار فقير دې.او كه توانګر دې؟ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه قرضدارئ ځكه قيدكولې شي.چه د ټال مواړه كاوه په وجه في الحال دده ظالم كيدل ښكاره شوى دى.اود ظلم سزا قيد ده.په دې وجه به دې قيد كولې شي.

> وَإِنَّمَا يَحْبِسُهُ مُدَّةً لِيَظْهَرَ مَالُهُ اود يوې مودې پورې به نې ځكه قيد كوي.چه دده مال ښكاره شي. لَوْ كَانَ يُخْفِيهِ فَلَا بُدَّ مِنْ أَنْ تَمْتَدَّ الْمُدَّةُ كه هغه دا (مال) پټه وي.نود مودې اوږدول ضروري دى. لِيُفِيدَ هَذِهِ الْفَائِدَةَ فَقَدَّرَهُ بِمَا ذَكَرَهُ، وَيُرْوَى غَيْرُ ذَلِكَ مِنَ التَّقْدِيرِ بِشَهْرٍ چې دا فائده حاصل شي.او ددې مقدار ذكر شوو مياشتو سره اندازه كړې شوې دې.او ددې نه علاوه مقدار يو مياشت أَوْ أَرْبَعَةٍ إِلَى سِتَّةِ أَشْهُرٍ يا څلور مياشتو نه شپږ مياشتو پورې نقل دې.

**حل اللغة:** مدة-موده\وخت-② يخفي-پټوى-③ تمتد-اوږده شى-④ تقدير-اندازه

**تشريح:-** او دې به درې مياشتې موده په جيل كې ځكه ساتلې شى.چه دده كوم مال چې دې نې پټه وي.ښكاره شى.نو ددې مقصد په خاطر د قيد موده اوږدول ضروري ده.علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د دوې (دوه) يا درې مياشتې مودې نه علاوه نورې مودې هم نقل دي.لكه چې حضرت امام طحاوى رحمه الله يوه مياشت موده مقرر كړې ده.او حسن بن زياد رحمه الله د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه څلور مياشتو نه شپږ مياشتو پورې موده روايت كړې ده.

> وَالصَّحِيحُ أَنَّ التَّقْدِيرَ مُفَوَّضٌ إِلَى رَأْيِ الْقَاضِي [1] او صحيح دادې.چه د مودې اندازه د قاضى رائې ته اوسپارلې شي. لِاخْتِلَافِ أَحْوَالِ الْأَشْخَاصِ فِيهِ ځكه چې په دې كې د خلګو حالات مختلف دي.

**حل اللغة:** ① لتقدير-اندازه-② مفوض-سپارلې شوې-③ راي-رائې-④ الاشخاص-جمع د شخص

**تشريح:-** خو صحيح قول دادې.چه د مودې مقررولو مسئله به د قاضى په رائې باندې كولې شي.قاضى صاحب چې ځنګه مناسب اوګنړي.قيد دې كړي.ځكه چې په دې اړه كې د خلګو حالات مختلف وي.بعض شريف خلګ د قيد مشكلات اود رسوايئ نه يريږي.او جلتئ سره د معامله ختمولو كوښښ كوي.او بعض خلګ داسې دهوكه باز (او بې شرمه) ډول وي.چه ددوى په نيز شرم او غيرت هيڅ مسئله نه ده.چه دوى په مودو قيد كې د اوسيدلو باوجود هم خپل ځان سره د مال كيدلو اقرار نه كوي.نو قاضى چونكه د خلګو د مزاج نه هم خبر وي.په دې وجه د قيد د مودې معامله به د قاضى په رائې باندې سپارلې شي.

### د قرضدار قيدي د قيدكولو موده

> قَالَ فَإِنْ لَمْ يَظْهَرْ لَهُ مَالٌ خَلَّى سَبِيلَهُ بيا كه دده هيڅ مال ښكاره نشي.نو دده لاره دې پريږدى. يَعْنِي بَعْدَ مُضِيِّ الْمُدَّةِ يعنى د مودې تيريدلو نه روسته لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ النَّظِرَةَ إِلَى الْمَيْسَرَةِ چونكه دې د مالداره كيدلو پورې د مهلت موندلو مستحق شو. فَيَكُونُ حَبْسُهُ بَعْدَ ذَلِكَ ظُلْمًا نو ددې نه روسته به دده قيد كول ظلم وي.

**حل اللغة:** ① خل-پريږدى-② سبيل-لاره-③ النظرة-انتظار-④ الميسرة-مالدارى

**تشريح:-** ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي.چه ،،على الاختلاف،، د قيد موده تيريدلو نه روسته كه قيدى سره مال ښكاره نشو.نو قاضى به دې آزاد كړي.ځكه چې داسړې اوس د مالداره كيدلو پورې د مهلت موندلو مستحق شوې دې.لكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ﴾ اوهركله چې دا سړې د مهلت موندلو مستحق شو.نو ددې نه روسته به دده قيدكول سراسر ظلم وي.اود ظلم لرې كول چونكه ضروري دى.په دې وجه به

[1] القول الراجح هو أن التقدير مفوض إلى رأى القاضي كذا في الكفاية (۳۷۹\۶) ومجمع الأنهر (۲۲۵\۳) والدرالمنتقى (۲۲۵\۳) نقلاً عن القول الراجح (۱۱۱\۲)-

قاضي قيدي ازاد کړي.

وَلَوْ قَامَتِ الْبَيِّنَةُ عَلَى إِفْلَاسِهِ قَبْلَ الْمُدَّةِ تُقْبَلُ فِي رِوَايَةٍ، اوکه د مودې تيريدلو نه وړاندې دده په فقير کيدلو باندې بينه قائم شو،نود يو روايت مطابق به دده قول قبلولې شي. وَلَا تُقْبَلُ فِي رِوَايَةٍ، اود يو روايت مطابق به دده قول نه قبليږي. وَعَلَى الثَّانِيَةِ عَامَّةُ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللهُ او عامة المشائخ په دوهم روايت باندې دي.

حل اللغة: ① قامت-قائم کړل-② افلاس-غريبي-③ تقبل-قبلولې شي-④ عامة-عام\اکثر

تشريح:- اوکه د قيد موده تيريدلو نه وړاندې د قيدي په فقير او غريب کيدلو باندې بينه قائم شو.مثلاً يو ثقه (با اعتماده) سړي يا دوې (دوه) سړو خبر ورکړو.يا دوې (دوه) سړو ددې خبرې شهادت ورکړو.چه دې فقير دې او زموږ د علم موافق دده سره د اغوستلو کپړو نه علاوه هيڅ مال نشته.موږ په پټه او ښکاره دواړه شان دده ازمينت کړې دې.نو په دې کې دوې (دوه) روايتونه دي.① يو روايت خو دادې.چه دده بينه به قبلولې شي.او قيدي به آزادولې شي.② او دوهم روايت دادې.چه بينه به نشي قبلولې.يعنې د قيد مودې تيريدلو نه وړاندې به قيدي نشي خلاصولې.علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه د عامو مشائخو مذهب د دوهم روايت مطابق دې.اوهم دا اصح دې.ځکه چې په فقيرۍ او غريبۍ باندې بينه کيدل په حقيقت کې په مال نه کيدلو باندې بينه (شهادت) دې.او په مال نه کيدلو باندې بينه نه کيدل په نفي باندې بينه کيدل دي. اود يو شي په نفي باندې که بينه پيش کړې شي.نودا نشي قبلولې.په دې وجه افلاس باندې چې کوم بينه پيش شوې دې.دا به نشي قبلولې.

قَالَ فِي الْكِتَابِ خُلِّيَ سَبِيلُهُ او په کتاب کې چې ئې اوفرمائيل.چه دده لاره دې پريږدې. وَلَا يَحُولُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غُرَمَائِهِ او دده او دده د قرضخواهانو په منځ کې دې منع نه کوي. وَهٰذَا كَلَامٌ فِي الْمُلَازَمَةِ اودا کلام په ملازمت کې دې. وَسَنَذْكُرُهُ فِي كِتَابِ الْحَجْرِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى اودا به موږ په کتاب الحجر کې ذکر کوو.

حل اللغة: ① خل-خالي کړو-② يحول-رکاوټ کيږي-③ غرماء-قرضخواهان-④ کلام-بحث\خبرې

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه د ماتن د قول،، في سبيله،،مطلب دادې.که مديون سره مال ښکاره نه وي.نودا دې دقيد نه آزاد کړي.او قاضي دې دده اود قرضخواهانو په منځ کې نه حائل کيږي.اودا په ملازمت کې کلام دې.يعنې دا په دې اړه کې کلام دې.چه د قيدي د آزاديدلو نه روسته به قرضخواه په ده پسې لګي.اوکه نه لګي؟ ددې تفصيل به انشاء الله په کتاب الحجر کې ذکرکولې شي.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: رَجُلٌ أَقَرَّ عِنْدَ الْقَاضِي بِدَيْنٍ فَإِنَّهُ يَحْبِسُهُ او په جامع صغير کې دي.چه يو سړې د قاضي په وړاندې د پور اقرار اوکړو،نو قاضي به دې قيد کوي. ثُمَّ يَسْأَلُ عَنْهُ، او بيا به دده حال معلوموي. فَإِنْ كَانَ مُوسِرًا أَبَّدَ حَبْسَهُ، نوکه دې توانګر وي.نو پيوسته به دې قيد کوي. وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا خَلَّى سَبِيلَهُ [1] اوکه فقير وي.نو دده لاره دې خالي کړي.

حل اللغة: رجل-سړې-موسر-مالدار-معسر-غريب-سبيل-لاره

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.په جامع صغير کې دي.که يوکس د قاضي په وړاندې دپور اقرار اوکړو.نو قاضي به دې قيد کوي.او بيا به دده په اړه کې د ګاونډ د خلګو اود نورو متعلقينو نه معلومات کوي.چه دا سړې توانګر دې.او که فقير دې.نوکه دده مالداره کيدل ښکاره شي.نو دده قيد دې پاتـه اوساتي.اوکه دده فقير کيدل ښکاره شي.نو آزاد دې کړي.د جامع صغير دا روايت په ښکاره د قدوري د عبارت مناقض او معارض دې.ځکه چې د قدوري عبارت کوم چې په رومبي فصل کې دې.ددې نه معلوميږي.که قرضه په اقرار سره ثابت شوې وي.نو

[1] القول الراجح هو رواية جامع الصغير كذا في الشرنبلالية (٣٠٧\٢) ومجمع الأنهر (٢٢٦\٣) ومنحة الخالق (٢٨٦\٦) والبحر الرائق (٢٨٨\٦) نقلاً عن القول الراجح (١١٢\٢)-



قاضي به په پيل کې قرضدار نه قيد کوي.اود جامع صغير ددې عبارت نه ښکاره کيږي.چه په اقرار کاوه سره به فوراً قاضي قرضدار په قيد کې بنديوان کوي.

وَمُرَادُهُ إِذَا أَقَرَّ عِنْدَ غَيْرِ الْقَاضِي او ددې مطلب دادې.چه کله ده د قاضي نه علاوه سره اقرار کړې وي. أَوْ عِنْدَهُ مَرَّةً يا ئې يوځل د قاضي په وړاندې اقرار کړې وي. وَظَهَرَتْ مُمَاطَلَتُهُ بيا دده ټال مټال ښکاره شو. وَالْحَبْسُ أَوَّلًا وَمُدَّتُهُ قَدْ بَيَّنَّاهُ فَلَا نُعِيدُهُ اود قيد کاوه ابتداء او ددې موده موږ وړاندې بيان کړې ده.په دې وجه ددې اعاده نه کوو.

حل اللغة: مراد-مطلب-مرة-يوځل-الحبس-بند\قيد-نعيد-موږ نې نه واپس کوو

تشريح:- د قدوري او جامع صغير په عبارتونو کې چونکه په ښکاره تناقض وو.په دې وجه علامه مرغيناني ﷫ د جامع صغير عبارت نقل کړو.او ددې صحيح مطلب ئې بيان کړو. لکه چې فرمائي.چه د امام محمد ﷫ مراد دادې.چه قرضدار د قاضي نه علاوه سره د پور اقرار کړې دې.خو بيا په ئې ادا کاوه سره دده دهوکه باز کيدل ښکاره شو.بيا قرضخواه دې قاضي له بوتلو.نو ځنګه چې ده د قاضي په وړاندې اقرار اوکړو،چه ما اوسه پورې قرضه نه ده ادا کړې.نو قاضي به دې قيد کوي.ددې تاويل نه روسته د قدوري او جامع صغير په عبارت کې هيڅ تناقض نه پاتې کيږي.علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه په جامع صغير کې د قيد کاوه ابتداء اود قيد موده چونکه هم هغه ده.کومه چې وړاندې بيان کړې شوې ده.په دې وجه ددې اعاده نشي کولې.

### د ښځې په نفقه کښې د ميړه قيدکولو حکم

قَالَ وَيُحْبَسُ الرَّجُلُ فِي نَفَقَةِ زَوْجَتِهِ فرمائي.او سړې به د خپلې ښځې په نفقه کې قيد کولې شي. لِأَنَّهُ ظَالِمٌ بِالِامْتِنَاعِ ځکه چې دې په انکار کولو کې ظالم دې.

حل اللغة: ① يحبس-بندولې شي-② الرجل-سړې-③ زوجة-ښځه-④ الامتناع-منع کيدل

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که قاضي په يو سړي باندې دده دښځې نفقه مقرر کړې وي.يا ښځې او ميړه د نفقې په څه مقدار باندې اتفاق کړې وي.بيا ميړه د ښځې نفقه ادا نکړله.او ښځې د قاضي په عدالت کې مقدمه پيش کړله.نو قاضي به ميړه قيد کوي.ځکه چې د نفقه نه ور کاوه په وجه د ميړه ظالم کيدل ښکاره شوې دې.اود ظالم سزا جيل او قيد دې.په دې وجه به ميړه د ښځې د نفقه نه ور کاوه په وجه قيد کولې شي.

### ځوی په پور کښې د پلار قيدکولو حکم

وَلَا يُحْبَسُ وَالِدٌ فِي دَيْنِ وَلَدِهِ او پلار به دده د ځوی په نفقه کې نشي قيد کولې. لِأَنَّهُ نَوْعُ عُقُوبَةٍ ځکه چې قيد کيدل يو ډول سزا ده. فَلَا يَسْتَحِقُّهُ الْوَلَدُ عَلَى الْوَالِدِ كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ نو ځوی ته په پلار باندې دداسې عقوبت استحقاق نشته.لکه حدود او قصاص،

حل اللغة: الوالد-پلار-نوع-قسم-عقوبة-سزا-يستحق-مستحق کيږي

تشريح:- او پلار به د خپل ځوی د پور په وجه نشي قيد کولې .يعنې که دځوی په پلار باندې قرضه وي.او پلار ئې ادانکړي.او زوې قاضي ته مقدمه پيش کړي.نو قاضي به دده پلار نه قيد کوي.ځکه چې قيدکول يو ډول سزا ده.او ځوی ته په پلار باندې د داسې سزا استحقاق نشته.تردې که پلار زوې په قصد سره قتل کړو.نود پلار څخه به قصاص نشي اخستلې.اوکه پلار پخپل ځوی باندې د زنا تهمت اولګولو.نو په پلار به حدقذف نه جاري کيږي.دغه ډول که پلار د ځوی قرضه ادا نکړي.نو ځوی ته دا حق حاصل نه دې.چه د خپلې پور په وجه پلار قيد کړي.

إِلَّا إِذَا امْتَنَعَ مِنَ الْإِنْفَاقِ عَلَيْهِ خو کله چې پلار په ځوی باندې د خرچ کاوه نه انکار اوکړي. لِأَنَّ فِيهِ إِحْيَاءً لِوَلَدِهِ ځکه چې په داسې کاوه کې دده د ځوی ژوند دې.

حل اللغة: امتنع-منع شي-الانفاق-خرچ کول-احياء-ژوندی کول-ولد-بچې

تشريح:- البته که پلار دخپل ځوی د نفقه ورکولونه انکار اوکړو.نو دې به قيد کولې شي.ځکه چې په نفقه ورکولوکې دده د بچي ژوند او پرورش دې.او په نفقه نه ورکولوکې دده د هلاکاوه کوښښ دې.نو بچي د هلاکاوه

د ازادي نه د منع كاوه لپاره به دي قيد كولي شي.

وَلِأَنَّهُ لَا يَتَدَارَكُ لِسُقُوطِهَا بِمُضِيِّ الزَّمَانِ، او ځكه چي ددې راګرځول نشي كيدې.ځكه چي په زمانه تيريدلو سره نفقه ساقطيږي. وَاللّٰهُ أَعْلَمُ والله اعلم بالصواب

حل اللغة: ① يتدارك-راګرځوی-② سقوط-ساقط كيدل-③ مضى-تيريدل-④ الزمان-زمانه

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه په زمانه تيريدلو سره نفقه ساقطيږي.په دې وجه ددې راګرځول ممكن نه دي.او نورې پور د زمانې په تيريدلو سره نه ساقطيږي.نو په دې وجه ددې تدارك ممكن دې.نو ددې توپير په وجه د اولاد نفقه په نورو قرضونو باندې نشي قياس كولې.

# باب كتاب القاضي الى القاضي

(دا) باب د يو قاضي خط بل قاضي ته د اورلو (په بيان كي) دي.

سفيل* د حبس او قيد لپاره د يو قاضي اړتيا راپيښيږي.او په، ،كتاب القاضي الى القاضي، ،كي د دوې (دوه) قاضيانو اړتيا راپيښيږي.نو، ،كتاب القاضي الى القاضي، ، په منزله د مركب شو.او قضاء بالحبس په منزله د مفرد شو.او مركب چونكه د مفرد نه روسته وي.په دې وجه، ،كتاب القاضي الى القاضي، ، روسته ذكركړې شو.او فصل في الحبس ئې وړاندې ذكر كړې دې.

د صحابه كرامو ﷺ او تابعينو ﷺ په اجماع سره د يو قاضي خط د دوهم قاضي په نوم جائز دې.او خلګو ته ددې حاجت هم دې.ځكه چي سړی ته كله هم دا قدرت نه وی.چه دې خپل ګواهان او مدعی عليه جمع كړی.مثلاً ګواهان په يو ښار كي دی.او مدعی عليه په بل ښار كي دې.اود مدعی لپاره دا دواړه جمع كول هم ممكن نه دی.نو مدعی د قاضي په وړاندې د ګواهانو ګواهي اداكړله.او ددې قاضي خط ئې واخستلو. دوهم قاضي له لاړو.كوم ځائې چي مدعا عليه موجود دې.نودا خط جائز كړې شو.چه حقدار ته دده حق ملاوشي.

اوكه دا اعتراض اوكړې شي.چه يو تحرير (ليكل) د بل تحرير مشابه وی.او يو مُهر د بل مهر مشابه وی.نو په دې كي د دهوكي (او فريب) شبه ده؟ نو ددې ځواب دادې.چه داشبه په دې طريقه لرې كيدلې شی.چه د قاضي خط سره دا شرط دې چه دوې (دوه) ګواهان وی.چه دوی دا ګواهي وركړی.چه كوم څه په دې خط كي دی.دا دهغه قاضي د اړخه دی.چا چي دا خط راليكلې دې.اوهم هغه دا خپل مهر لګولې دې.

د، ،كتاب القاضي الى القاضي، ، په جواز باندې د ضحاك بن سفيان حديث شاهد عدل دې.حديث دادې. ﴿ان رسول الله ﷺ كتب إليه أن ورثت امرأة اشيم الضبابي من دية زوجها﴾ پوره واقعه داده.حضرت عمر ﷺ به فرمائيل.چه يوه ښځه به د خپل ميړه په ديت كي نه وارثه كيږی.نو ضحاك بن سفيان فاروق اعظم ﷺ ته خبر وركړو.چه د الله تعالى رسول ﷺ ماله دا حديث ليكلې راوليكلو چه د اشيم ضبابي ښځه ددې د ميړه په ديت كي وارثه جوړه كړه.دا ئې هغه وخت ليكلې راليكلې وو.كله چي اشيم ضبابي د نبي كريم ﷺ په ژوند كي په خطاء سره قتل كړې شوې وو.ددې حديث نه معلوميږی.چه خط معتبر دې.كه خط معتبر نه وې.نو رسول الله ﷺ به ضحاك ابن سفيان له د اشيم ضبابي د ښځې په اړه كي خط ولې ليكلو.د فقهاؤ اجماع هم په دې ده.البته په حدود او قصاص كي به دا خط معتبر نه وی.بلكه په داسې حقوقوكي معتبر دې.كوم حقوق چي د شبهٔ باوجود ثابتيږي.

په كومو حقوقوكښې به د قاضي خط قبلولې شي؟

قَالَ وَيُقْبَلُ كِتَابُ الْقَاضِي إِلَى الْقَاضِي فِي الْحُقُوقِ او، ،كتاب القاضي الى القاضي، ،به په حقوقو كي قبلولې شی. إِذَا شُهِدَ بِهِ عِنْدَهُ لِلْحَاجَةِ عَلَى مَا نُبَيِّنُ كله چي دوهم قاضي په وړاندې ددې خط شهادت وركړې شی.(دا جواز) د حاجت په وجه دې په هغه بناء باندې كوم به چي موږ بيانوو.

تشريح:- شيخ ابوالحسن قدوری ﷺ فرمائی چه د قاضي خط د بل قاضي په نوم داسې حقوقوكي مقبول دې.كوم



حقوق چي د شبهاتو باوجود ثابتيږي.په دې شرط چي دوې (دوه) ګواهان مكتوب اليه قاضي په وړاندې دا ګواهي وركړی.چه دا خط د فلانی قاضي دې.اودا د هغه مهر دې.اوكوم حقوق چي د شبهاتو په وجه لرې كيږی. لكه حدود او قصاص، په هغې كي د يوقاضي خط د بل قاضي په نوم نه قبليږي.

فَإِنْ شَهِدُوا عَلَى خَصْمٍ حَاضِرٍ حَكَمَ بِالشَّهَادَةِ نو كه ګواهانو په خصم حاضر باندې ګواهي وركړله.نو كاتب قاضي به د شهادت موافق حكم وركوی. لِوُجُودِ الْحُجَّةِ وَكَتَبَ بِحُكْمِهِ ځكه حجت اوموندې شو.او خپل حكم به ليكی. وَهُوَ الْمَدْعُوُّ سِجِلًّا او هم دې ته سجل (فائل) وائی.

حل اللغة: ① حاضر-موجود-② حكم-فيصله اوكړه-③ الحجة-دليل-④ سجل-فائل

تشريح:- كه ګواهانو د مدعی عليه په وړاندې ګواهي وركړله.نو چونكه شرعی حجت اوموندې شو.په دې وجه به كاتب قاضي د شهادت موافق حكم وركوی.اوخپل دا حكم به ليكی. چې ما د ګواهئ موافق په فلانی مدعی عليه باندې حكم وركړې دې.دې ته سجل ونيلې شی.

خو دلته كي دا سوال كيږی.چه هركله ګواهي د مدعی عليه په وړاندې وركړې شوې ده.او هم دده په موجودګئ كي حكم وركړې شو.نو بيا دوهم قاضي ته د خط اورلو څه اړتيا دې؟ ددې ځواب دادې.چه داسې كيداې شی.چي قاضي په حاضر مدعی عليه باندې حكم وركړې وی.خودا ئې جاری كړې نه وی.او په دې موده كي مدعی عليه بل ښار ته لاړشی.نود حكم جاری كاوه لپاره د هغه ځائې قاضي په نوم د خط ليكلو اړتيا راپيښيږي.

وَإِنْ شَهِدُوا بِهِ بِغَيْرِ حَضْرَةِ الْخَصْمِ لَمْ يَحْكُمْ اوكه ګواهانو د خصم حاضريدلو نه بغير ګواهي وركړله.نو كاتب قاضي به په دې باندې حكم نه كوی. لِأَنَّ الْقَضَاءَ عَلَى الْغَائِبِ لَا يَجُوزُ ځكه چي قضاء على الغائب جائز نه ده. وَكَتَبَ بِالشَّهَادَةِ لِيَحْكُمَ الْمَكْتُوبُ إِلَيْهِ بِهَا او قاضي به شهادت ليكی.چه مكتوب اليه قاضي ددې ګواهئ مطابق فيصله وركړی. وَهٰذَا هُوَ الْكِتَابُ الْحُكْمِيُّ اودې ته خط حكمی ونيلې شی. وَهُوَ نَقْلُ الشَّهَادَةِ فِي الْحَقِيقَةِ اودا په حقيقت كي د ګواهئ نقل دې. وَيَخْتَصُّ بِشَرَائِطَ نَذْكُرُهَا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى اودا داسې شرائطو سره مختص دې.چه دا به موږ انشاء الله ذكركړو.

حل اللغة: ① حضرة-موجودګی-② القضاء-فيصله-③ نقل-نقل كړو-④ يختص-خاص كيږی

تشريح:- اوكه ګواهانو د خصم (مدعی عليه) په غيرموجودګئ كي ګواهي وركړې وی.نو زموږ په نيز چونكه د غائب په خلاف حكم وركول جائز نه دی.په دې وجه به كاتب قاضي حكم نه وركوی.بلكه صرف شهادت به ليكی.چه مكتوب اليه قاضي ددې ګواهئ موافق حكم وركړی.هم دې ته خط حكمی وائی.

د سجل او خط حكمی په منځ كي توپير دادې.چه سجل كله مكتوب اليه قاضي ته اورسی.نوهغه به دا نافذ كوی.كه دا دده د رائې موافق وی.اوكه مخالف وی.ځكه چي په دې كي كاتب قاضي وركړې شوې حكم موجود دې.اود خط حكمی په صورت كي كه د مكتوب اليه قاضي د رائې موافق وی.نو نافذ به ئې كړی.ګني نه به ئې نافذ كوی.ځكه چي په دې كي د كاتب قاضي حكم موجود نه دې.هم دا علامه مرغينانی ﷺ بيان كړې دې.چه خط حكمی په حقيقت كي د شهادت منتقل كاوه نوم دې.يعنی د قاضي مكتوب اليه اړخ ته ئې شهادت منتقل كړې دې.چه مكتوب اليه قاضي هم ددې مطابق حكم وركړی.اود، ،كتاب القاضي الى القاضي، ، لپاره يو څو شرطونه دی.چه دا به روسته ذكركوو.من جمله د هغې نه د پنځه څيزونو معلوميدل ضروری دی.

صاحب د عنايه ﷺ فرمائی. ﴿من معلوم إلى معلوم في معلوم لمعلوم على معلوم﴾ يعنی كاتب قاضي معلوم وی.قاضي مكتوب اليه معلوم وی.د كوم شئ په اړه كي چي خط دې.او دچا لپاره چي خط دې.يعنی مدعی، هغه معلوم وی.اود چا خلاف چي خط دې.يعنی مدعی عليه هغه معلوم وی.

وَجَوَازُهُ لِمِسَاسِ الْحَاجَةِ او ددې جواز د اړتيا په وجه دې. لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ قَدْ يَتَعَذَّرُ عَلَيْهِ الْجَمْعُ بَيْنَ شُهُودِهِ وَخَصْمِهِ ځكه چي كله كله په مدعی باندې خپل ګواهان او مدعی عليه جمع كول متعذر وی. فَأَشْبَهَ الشَّهَادَةَ عَلَى الشَّهَادَةِ نودا د شهادت على الشهادت مشابه شو.

**حل اللغة:** جواز-جائز کېدل-مساس-پېښېدل-يتعذر-ګرانيږي-اشبه-مشابه شو

**تشريح:**- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي چه د ،،کتاب القاضي الى القاضي،، اجازت ورکړې شوې دې او ارتيا په دې شان دې چه ډېر خله مدعي لپاره مدعى عليه او ګواهان جمع کول مشکل وي، په دې طريقه چې ګواهان خود مدعي په ښار کې وي او مدعى عليه په بل ښار کې وي او ګواهان د مدعى عليه ښار ته تللو لپاره تيار نه دي او مدعى عليه د ګواهانو ښار ته راتګ و لپاره راضي نه دی. نو په داسې صورت کې د ،،کتاب القاضي الى القاضي،، نه بغير بل څه شکل نه جوړيږي. نو د ،،کتاب القاضي الى القاضي،، اجازت ورکړې شو. او دا د شهادت على الشهادت مشابه شو. نو لکه څنګه چې د بنده ګانو حقونو ژوندي کاوه لپاره شهادت على الشهادت جائز کړې شوې دې. هم دغه شان ،،کتاب القاضي الى القاضي،، هم جائز کړې شوې دې.

❓ ددې نه روسته دې خط راواره کړي په دې دې مهر اولګوي. بيا دې دا خط مدعي ته حواله کړي. نو کله چې مدعي دا خط مکتوب اليه قاضي ته بيان کړي چه دا د فلاني قاضي خط دې. نو هغه دې په دې باندې ګواهان طلب کړي. بيا کوم وخته پورې چې مدعى عليه حاضر نشي. د ګواهانو سماعت به نه کوي (يعنې ګواهي به نه اوري). او کله چې دې حاضر شي او اقرار اوکړي چه هم زه فلان بن فلان يعنې شاهد د ماجد آله آبادي زوې يم. نو مکتوب اليه قاضي به د ګواهانو سماعت اوکړي. او که مدعى عليه انکار اوکړي. نو مدعي دې پخپلو ګواهانو سره ثابته کړي چه هم دا شاهد بن ماجد آله آبادي مدعى عليه دې. نو د مدعى عليه د ثبوت نه روسته دې د مدعي د ګواهانو سماعت اوکړي چه دا د فلاني قاضي خط دې. بيا به مکتوب اليه قاضي د ګواهانو نه پوښتنه کوي چه قاضي په دې کې څه ليکلي دی. هغه ني تاسو ته اورولې وو. که دوی اقرار اوکړو او ګواهي ني ورکړله چه دا خط هم د هغه دې او هم د هغه مهر دې. نو مکتوب اليه قاضي به ددوی د عدالت او ديانت معلومات اوکړي. نو کله چې ددوی عدالت او ديانت ثابت شي. نو د مدعى عليه په موجودګۍ کې به مهر اوشلوي او خط به واوږوي.

### د حقوقو نه کوم حقوق مراد دي؟

وَقَوْلُهُ فِي الْحُقُوقِ يَنْدَرِجُ تَحْتَهُ الدَّيْنُ وَالنِّكَاحُ وَالنَّسَبُ وَالْمَغْصُوبُ وَالْأَمَانَةُ الْمَجْحُودَةُ وَالْمُضَارَبَةُ الْمَجْحُودَةُ د مصنف ﷫ د قول ﴿وفي الحقوق.....﴾ لاندې قرضه، نکاح، نسب، مغصوب، دکوم امانت نه چې انکار کړې شوی وي، اود کوم مضاربت نه چې انکار کړې شوی وي. واړه داخل دي.

**حل اللغة:** ① يندرج-ليکلې شي-② تحت-لاندې-③ الدين-قرض-④ المجحودة-چه انکار ترې شوې وي

**تشريح:**- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي چه دا څه چې شيخ قدوري ﷫ اوفرمائيل چه د قاضي په حقوقو کې قبول دې نو په دې کې دا راروان شيان داخل دی. ① لکه پور شو. په قرضه کې چونکه د قاضي خط قبلولې شي. په دې وجه کوم شيان چې ددې په مرتبه کې دی. په هغې کې هم د قاضي خط قبلولې شي. ② دغه ډول نکاح شوه د نکاح صورت دادې چه يو سړی په يوې ښځې باندې د نکاح دعوی اوکړله. يا ښځې په سړي باندې د نکاح دعوه اوکړله. دلته کې يو سوال دې. هغه دا چې په نکاح کې اشاره کول شرط دی. يعنې سړی او ښځې ارخ ته اشاره کول ضروري دی. او کوم شيان چې د اشارې محتاج وي. په هغې کې ،،کتاب القاضي الى القاضي،، ناجائز دې. نو په نکاح کې هم ،،کتاب القاضي الى القاضي،، ناجائز کېدل پکار دی؟ ددې ځواب دادې چه په نکاح کې سړی او ښځې ارخ ته اشاره شرط ده. حالانکه مدعي به نفس نکاح ده. ښځه او سړې نه دې. او نفس نکاح د افعالو د قبيلې څخه ده. او افعال د اشارې محتاج نه وي. نو نفس نکاح د پور پشان شوه. چه لکه څنګه په قرضه کې د قرضدار ارخ ته اشاره شرط ده. خو نفس قرضه کومه چې په ذمه کې واجب ده. هغې ارخ ته اشاره شرط نه ده. نو لکه څنګه چې قرضدار ارخ ته د اشارې شرط کېدلو باوجود په قرضه کې ،،کتاب القاضي الى القاضي،، جائز دې. دغه ډول په نکاح کې هم کتاب القاضي الى القاضي جائز دې. هم دا سوال او ځواب به په نسب وغيره نورو څيزونو کې جاری کيږي. ③ دغه ډول نسب شو. اود نسب صورت دادې چه يو سړی دعوه اوکړله چه زه د فلاني زوې يم. يا پلار يم. ④ دغه ډول غصب شو. د غصب صورت دادې چه يوسړی دعوه اوکړله چه فلاني سړي زما دومره قدرې مال



غصب کړې دې. ⑤ دغه ضان د امانت نه انکار شو. د صورت دادې چه يوسړي اووئيل چه فلاني سړی سره زما يو زر روپۍ د امانت په طور وې. خو هغه انکار کوي. ⑥ اود مضاربت نه د انکار کاوه صورت دادې چه يوسړي دعوه اوکړله چه ما فلاني سړي ته يو زر روپۍ د مضاربت لپاره ورکړې وې. خو مضارب د مضاربت نه انکار کوي.

لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ بِمَنْزِلَةِ الدَّيْنِ، دليل دا دې چې هريو په منزله د پور دې. وَهُوَ يُعْرَفُ بِالْوَصْفِ لَا يُحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الْإِشَارَةِ اودا په وصف سره پيژندلې شي. په دې کې د اشارې حاجت نه وي.

**حل اللغة:** ① کل-ټول-② منزلة-پشان-③ يعرف-پيژندلې شي-④ يحتاج-حاجت پيښيږي

**تشريح:**- دليل دا دې چې په دې کې هريو د پور په مرتبه کې دې. يعنې لکه څنګه چې قرضه د ماوجب في الذمه نوم دې او ددې شناخت په وصف سره کيږي. هغې ارخ ته د اشارې ارتيا نه وي. هم دغه ډول د ذکرشوي څيزونو شناخت هم په وصف سره کيږي. دې ارخ ته د اشارې ارتيا نشته.

وَيُقْبَلُ فِي الْعَقَارِ أَيْضًا او په غير منقوله جائيداد کې هم خط حکمي قبلولې شي. لِأَنَّ التَّعْرِيفَ فِيهِ بِالتَّحْدِيدِ. ځکه چې په حدودو بيانولو سره د عقار شناخت کيږي. وَلَا يُقْبَلُ فِي الْأَعْيَانِ الْمَنْقُولَةِ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْإِشَارَةِ او په اعيان منقوله کې قبول نه دې. ځکه چې ددې ارخ ته د اشارې حاجت دې.

**حل اللغة:** العقار-مځکه-التعريف-شناخت-التحديد-حد بيانول-المنقولة-چه نقل کيداې شي

**تشريح:**- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي چه عقار يعنې مځکه، کور وغيره کې هم ،،کتاب القاضي الى القاضي،، قبلولې شي. ځکه چې د زمکې شناخت په حدود اربعه بيانولو سره کيږي. د اشارې ارتيا نشته. او وړاندې تيرشوي دی چه کوم شئ د اشارې محتاج نه وي. په هغې کې د قاضي خط قبلولې شي. نو په مځکه کې به هم د قاضي خط قبلولې شي. او اعيان منقوله لکه څاروې، غلام، وينځه، په دې کې د قاضي خط نه قبليږي. ځکه چې اموال منقوله د اشارې محتاج وي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ يُقْبَلُ فِي الْعَبْدِ دُونَ الْأَمَةِ اود امام ابويوسف ﷫ نه نقل دی. چه په غلام کې قبلولې شي. په وينځه کې نشي قبلولې. لِغَلَبَةِ الْإِبَاقِ فِيهِ دُونَهَا ځکه چې په غلام کې تختيدل زيات دی. په وينځه کې نه دی.

**حل اللغة:** يقبل-قبلولې شي-العبد-غلام-الامة-وينځه-الاباق-تختيدل

**تشريح:**- د حضرت امام ابويوسف ﷫ نه نقل دی. چه د قاضي خط به د غلام په اړه کې قبلولې شي. خود وينځې په اړه کې به نشي قبلولې. ځکه چې غلام د کور نه د بهر خدمت کاوه په وجه په تختيدلو باندې زيات قادر دې. او وينځه چونکه په کور کې دننه خدمت کوي. په دې وجه دې ته په تختيدلو باندې زيات قدرت نه وي. چونکه په غلام کې د تختيدلو امکان زيات قوي دې. په دې وجه د غلام په اړه کې د قاضي د خط ارتيا راپيښيږي. او په وينځه کې د تختيدلو امکان چونکه زيات قوي نه وي. په دې وجه د وينځې په اړه کې د قاضي د خط ارتيا نه راپيښيږي. نو په کوم ځائې کې چې د قاضي د خط ارتيا دې. هلته کې به قبلولې شي. او کوم ځائې کې چې ارتيا نشته. هلته کې به نه قبليږي.

وَعَنْهُ أَنَّهُ يُقْبَلُ فِيهِمَا بِشَرَائِطَ تُعْرَفُ فِي مَوْضِعِهَا اود امام ابويوسف ﷫ نه دا روايت هم دې. چه د غلام او وينځې دواړو اړه کې خط قاضي قبول دې. په يوڅو شرطونو سره چې دا به پخپل مقام کې معلوم شي.

**حل اللغة:** ① يقبل-قبلولې شي-② شرائط-جمع د شرط-③ تعريف-پيژندل-④ موضع-ځائې

**تشريح:**- اود حضرت امام ابويوسف ﷫ دوهم روايت دادې. چه د قاضي خط د غلام او وينځې دواړو په اړه کې قبلولې شي. خو په هغه شرطونو سره کوم شرطونه چې په مبسوط وغيره کې ذکر دی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ يُقْبَلُ فِي جَمِيعِ مَا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ [1] اود امام محمد ﷫ نه نقل دی.چه د قاضي خط په هغه ټولو څیزونو کي قبول دي.کوم چي منتقل او محول کیداې شي. وَعَلَيْهِ الْمُتَأَخِّرُونَ اوهم په دې باندې متاخرين مشائخ دي.

حل اللغة: يقبل-قبلولې شي-جميع-ټول-ينقل- نقل کولې شي-يحول-اړولې شي

تشریح:- دحضرت امام محمد ﷫ نه روایت دې.چه کوم شیان منقول او محول (حواله) کیږي.په دې ټولو کي د قاضي خط مقبول دې.هم په دې باندې د متاخرينو فتوی ده.امام مالك، امام شافعي او امام احمد ﷫ هم ددې قائل دی.

## د مکتوب اليه قاضي لپاره د خط قبلولو شرطیت

قَالَ وَلَا يُقْبَلُ الْكِتَابُ فرماني.او مکتوب اليه قاضي به د کاتب قاضي خط نه قبلوی. إِلَّا بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ مګر د دوې (دوه) سړو یاد یو سړي اود دوې (دوه) ښځو په ګواهۍ سره،

حل اللغة: ① شهادة-ګواهي-② رجلين-جمع د رجل سړې-③ امراتين-جمع د مراة ښځه-④ يقبل-قبلولې شي

تشریح:- ابو الحسين قدوري ﷫ فرماني.چه مکتوب اليه قاضي به د کاتب قاضي خط هغه وخت قبلوی.کله چي په دې باندې بينه موجود وی.يعنی دوې (دوه) عادل سړي يا يوسړې او دوې (دوه) ښځې ګواهي ورکړی.چه دا دکاتب قاضي خط اود هغه مهر دې.اوهغه موږ ګواهان مقرر کړي يو.

او امام شعبي ﷫ فرماني.چه د بينه نه بغير د قاضي خط قبلول جائز دی.هم دا يو روايت د امام مالك﷫ دې.اوهم دا يو روايت د امام ابويوسف﷫ دی.خو ددې حضراتو په نيز دا شرط دې.چه مکتوب اليه قاضي د کاتب قاضي خط اود هغه مهر پيژني.ددوی دليل قياس دی.يعنی که د دارالحرب بادشاه د امان حاصلولو لپاره د دارالاسلام بادشاه ته د امان حاصلولو لپاره خط راولیګي.نود اسلامي مملکت بادشاه د بينه نه بغير دده خط قبلولې شي.اودا شرعاً جائز دی.اوهم دغه ډول که قاضي د ګواهانو تزکيه کونکي مزکي ته خپل قاصد اوليګلو.نو بغير د ګواهانو نه دده قبلول جائز دی.چه دا د قاضي سړې دې.اوکه مزکي خپل قاصد قاضي ته راولیګلو نو قاضي لپاره د بينه نه بغير دده قبلول جائزدی.چه دا دمزکي سړې دې.نولکه څنګه چي د دارالحرب د بادشاه د امان خط،د دارالاسلام دبادشاه لپاره د بينه نه بغير قبلول جائز دی.اود قاضي قاصد مزکي ارخ ته،اود مزکي قاصد قاضي اړخ ته د بينه نه بغير قبلولې شي.دغه ډول د مکتوب اليه قاضي لپاره دکاتب قاضي خط هم د بينه نه بغير قبلول جائز دی.

لِأَنَّ الْكِتَابَ يُشْبِهُ الْكِتَابَ فَلَا يَثْبُتُ إِلَّا بِحُجَّةٍ تَامَّةٍ دليل دا دې چي ليکل د ليکلو مشابه وی.نود حجت تامه نه بغير به نه ثابتيږی. وَهَذَا لِأَنَّهُ مُلْزِمٌ فَلَا بُدَّ مِنَ الْحُجَّةِ اودا ځکه چي دا لازمونکې دې.نو حجت ضروری دې.

حل اللغة: يشبه-مشابه وی-يثبت- ثابتيږی-حجة-دليل-فلابد-ضروری ده

تشریح:- د جمهورو فقهاؤ دليل دادې.چه يو خط چونکه د بل خط مشابه وی.په دې وجه د کاتب قاضي خط کيدل د حجت تامه نه بغير نه ثابتيږی.اود حجت او بينه کيدل ځکه شرط دی.چه د قاضي د خط په ذريعه مدعی عليه باندې هغه شی لازمولې شي.کوم چي په خط کي دننه ليکلی شوی دی.او په چا باندې يو شی لازمول د بينه نه بغير نه کيږي.په دې وجه د قاضي د خط قبلولو لپاره بينه او حجت تامه کيدل ضروری دی.اود يوسړي اود دوې (دوه) ښځو شهادت قبلول ځکه جائز دی.چه وړاندې تيرشوی دی.چه د قاضي خط په داسې حقوقو کي قبليږی.کوم حقوق چي په شبهاتو سره نه ساقطيږی.اوکوم حقوق چي په شبهاتو سره نه ساقطيږی.په هغې کي سړو سره د ښځو

[1] القول الراجح هو رواية محمد ﷫ كذا في فتح القدير(٣٨٤\٦) والزيلعي (١٨٣\٤) والكفاية (٣٨٦\٦) والدرالمختار(٣٩٠\٤) وردالمحتار(٣٩٠\٤) نقلاً عن القول الراجح (١١٣\٢)-



شهادت هم قبلولې شی.په دې وجه د قاضي د خط قبلولو لپاره د يوسړي او دوې (دوه) ښځو شهادت هم کافي دې.

بِخِلَافِ كِتَابِ الْاِسْتِئْمَانِ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُلْزِمٍ په خلاف د هغه خط کوم چي د اهل حرب د اړخه د امن غوښتلو لپاره ليکلې شوې وی.ځکه چي هغه لازمونکې نه دې.

حل اللغة: ① کتاب-خط-② الاستئمان-امن غوښتل-③ اهل الحرب-جنګ کونکې-④ ملزم-لازمونکې

تشریح:- په دې عبارت سره د امام شعبي ﷫ د قياس ځواب دې.حاصل د ځواب دادې.چه د دارالحرب د بادشاه د امان خط په امام المسلمين باندې هيڅ شی نه لازموی.بلکه امام المسلمين ته اختيار دې.که غواړی.دا خط دې قبول کړی.او اهل حرب ته دې امان ورکړی.اوکه غواړی. امان دې نه ورکوی.اوکوم شی چي ملزم (لازمونکې) نه وی.هغه د بينه او حجت محتاج نه وی.په دې وجه د امان طلب کولوخط د بينه نه بغير قبلولې شي.

وَبِخِلَافِ رَسُولِ الْقَاضِي إِلَى الْمُزَكِّي وَرَسُولِهِ إِلَى الْقَاضِي او په خلاف د قاضي د قاصد ، مزکي اړخ ته،اود مزکي د قاصد قاضي اړخ ته. لِأَنَّ الْإِلْزَامَ بِالشَّهَادَةِ لَا بِالتَّزْكِيَةِ ځکه چي لازمول په ګواهۍ سره کيږی.په تزکيه سره نه کيږی.

حل اللغة: ① رسول-پيغام رسونکې-② المزکي -پاکي بيانونکې-③ الشهادة-ګواهي-④ التزکية-پاکي ثابتول

تشریح:- دغه ډول که قاضي مزکي (د ګواهانو صفائي او تعديل کونکي) ته خپل قاصد اوليګلو.يا مزکي قاضي ته خپل قاصد اوليګلو.نودا تزکيه ملزم نه ده.بلکه د ګواهانو ګواهي ملزم ده.اوهرکله چي تزکيه ملزم نه ده.نو ددې د قبلولو بينه او حجت موجود کيدل به هم شرط نه وی.يعنی په مدعی عليه باندې د قاصد په وجه حق نه لازميږی.بلکه د هغه ګواهانو په ذريعه لازميږی.کوم ګواهان چي د قاصد په ذريعه عادل ګرځولی شوی دی.اوهرکله چي د قاصد په ذريعه حق لازم نکړې شو.نود قاصد پيغام قبلولو لپاره به په ده باندې حجت کيدل هم شرط نه وی.دا دې واضحه وی.که يو قاضي دوهم قاضي ته دخط په ځائې خپل قاصد اوليګلو.نود قاصد د پيغام په وجه به په مدعی عليه باندې هيڅ فيصله نشی کولې.که په دې خبره (چي فلانې د قاضي قاصد دې) بينه وی.اوکه نه وی.حاصل داچه ،،کتاب القاضي الی القاضي،، په بينه سره قبلولې شی.خو رسول القاضي الی القاضي به بينه سره نشی قبلولې.او وجه د توپير داده.چه د ،،کتاب القاضي الی القاضي،، په جواز باندې خلاف قياس اثر اود تابعينو اجماع وارد شوې ده.په دې وجه به ،،کتاب القاضي الی القاضي،، جائز وی.اود رسول القاضي الی القاضي په جواز باندې چونکه نه اثر وارد دې.اونه اجماع نقل ده.په دې وجه به رسول القاضي الی القاضي د قياس مطابق ناجائز وی.

## د کاتب قاضي ګواهانو خط اورول او مهرلګول

قَالَ وَيَجِبُ أَنْ يَقْرَأَ الْكِتَابَ عَلَيْهِمْ لِيَعْرِفُوا مَا فِيهِ أَوْ يُعْلِمَهُمْ بِهِ فرماني.اود کاتب قاضي لپاره واجب دی.چه دې ګواهانو ته خط واوروی.چه دوی ددې د مضمون نه خبرشي.يا پخپله دوی ددې د مضمون نه خبر کړی. لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ بِدُونِ الْعِلْمِ ځکه چي د علم نه بغير ګواهي نشي کيدې. ثُمَّ يَخْتِمُهُ بِحَضْرَتِهِمْ وَيُسَلِّمُهُ إِلَيْهِمْ بيا ددوی په موجودګۍ کي مهر اولګوی.اودا خط دوی ته اوسپاری. كَيْ لَا يُتَوَهَّمَ التَّغْيِيرُ چي په دې کي د تغير (اوتبديل) وهم نه وی.

تشریح:- ابوالحسين قدوري﷫ فرماني.چه شهادت وغيره کوم څه چي کاتب قاضي پخپل خط کي ليکلی دی.قاضي کاتب به د خط پوره مضمون ګواهانو ته اوروی.يا د وئيلو نه بغير به دوی ددې مضمون نه خبروی.ځکه که ګواهانو ته د خط مضمون معلوم نه وی.نو ددوی ګواهي به د علم نه بغير وی.اود علم نه بغير ګواهي ورکول باطل دی.لکه چي د الله تعالی ارشاد دې. ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾،خو چاچه ګواهي ورکړله رښتونې،او دوی خبر وو،،يعنی که يوکس د خپل علم مطابق رښتونې ګواهي ورکړله.نو هغه معتبر ده.ددې آيت نه معلومه شوه.چه ګواه ته دهغه شی علم ضروری دې.د څه په اړه کي چي دې ګواهي ورکول غواړی.بهرحال کاتب قاضي چي کله د ګواهانو په وړاندې خط واوړولو.يا ئې دوی په دې مضمون باندې خبردار کړل.نو ددوی په موجودګۍ کي دې مهر

اولګوي او بند دې کړي. د طرفینو رحمهما الله په نیز دې دا خط ګواهانو ته حواله کړي. اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز دې مدعي ته حواله کړي. او مهر لګول او بندول، په دې وجه دي. چه په مضمون کې دننه د څه تغیر او تبدیلۍ شبه پاتې نشي.

**وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ**، اودا د طرفینو رحمهما الله په نیز دي. **لِأَنَّ عِلْمَ مَا فِي الْكِتَابِ وَالْخَتْمِ بِحَضْرَتِهِمْ شَرْطٌ**، دلیل دا دې چې د خط د مضمون علم اود ګواهانو په موجودګۍ کې مهر لګول شرط دی. **وَكَذَا حِفْظُ مَا فِي الْكِتَابِ عِنْدَهُمَا** اوهم دغه دول د طرفینو رحمهما الله په نیز د خط مضمون محفوظ پاتې کیدل شرط دی. **وَلِهٰذَا يَدْفَعُ إِلَيْهِمْ كِتَابٌ آخَرُ غَيْرُ مَخْتُوْمٍ** اوهم په دې وجه کاتب قاضي ګواهانو ته دوهم خط د مهر نه بغیر ورکړي. **لِيَكُوْنَ مَعَهُمْ مُعَاوَنَةٌ عَلٰى حِفْظِهِمْ** چې دوی سره ددوی په یاد ساتلو کې معاونت وی.

**حل اللغة:** ① الختم-مهر-② يدفع-ورکولې شی-③ مختوم-سربه مهر-④ معاونة-مدد

**تشریح:**- علامه مرغیناني رحمه الله فرماني چه د خط د مضمون نه ګواهان خبرول، او ددوی په موجودګۍ کې مهر لګول، او بندول، او ګواهانو ته د خط مضمون د شهادت د وخت نه واخله د ادا د وخته پورې یاد پاتې کیدل، د طرفینو رحمهما الله په نیز شرط دی. امام شافعي او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی. او یو روایت د امام مالك رحمه الله هم دا دې. چونکه د قاضي د خط مضمون ګواهانو ته یاد پاتې کیدل شرط دی. په دې وجه دا اووئیلی شو. چه قاضي کاتب یو بل د مهر نه بغیر خط ګواهانو ته ورکړي. چه دوی دا ښه اوګوري. او مضمون یاد پاتې شي. که په خط کې دننه ذکرشوي امورو کې څه امر د ګواهانو نه د ګواهۍ په وخت فوت شو. نود طرفینو رحمهما الله په نیز به مکتوب الیه قاضي دا خط نه قبلوي. د حضرت امام ابویوسف رحمه الله رومبنې قول هم د طرفینو رحمهما الله د قول پشان دې.

**وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ آخِرًا: شَيْءٌ مِنْ ذٰلِكَ لَيْسَ بِشَرْطٍ**، او امام ابویوسف رحمه الله په آخرکې فرمائیلي دي. چه په دې کې هیڅ شئ شرط نه دې. **وَالشَّرْطُ أَنْ يُشْهِدَهُمْ أَنَّ هٰذَا كِتَابُهُ وَخَتْمُهُ** بلکه شرط دادې. چه دوی په دې خبره باندې ګواه کړي. چه دا دده خط او دده مهر دې.

**حل اللغة:** ① طاعة-تابعداري-② یشهد-ګواهي کوی-③ کتاب-خط-④ ختم-مهر

**تشریح:**- خود امام ابویوسف رحمه الله آخري قول دادې چه دخط د مضمون نه د ګواهانو خبریدل او ګواهانو ته مضمون یاد پاتې کیدل، په دې کې هیڅ یو شئ شرط نه دې. بلکه صرف دا شرط دې. چه دوی په دې خبره باندې ګواهان کړي. چه دا زماخط او زما مهر دی. هم دا یو روایت د امام مالك رحمه الله دې. که ګواهانو مکتوب الیه قاضي په وړاندې دا ګواهي ورکړله. چه دا د کاتب قاضي خط اود هغه مهر دې. نوکافي ده.

**وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّ الْخَتْمَ لَيْسَ بِشَرْطٍ أَيْضًا**[1] اود امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی. چه د کاتب قاضي مهر هم شرط نه دې. **فَسَهَّلَ فِيْ ذٰلِكَ لَمَّا ابْتُلِيَ بِالْقَضَاءِ** نو امام ابویوسف رحمه الله په دې اړه کې آسانتیا هغه وخت پیدا کړله. کله چې پخپله د قضاء عهدې سره اخته شو. **وَلَيْسَ الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ**. او خبر د مشاهدې پشان نه دې. **وَاخْتَارَ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرْخَسِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ قَوْلَ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او شمس الائمه سرخسي رحمه الله د امام ابویوسف رحمه الله قول اختیار کړې دې.

**حل اللغة:** ① سهل-اسانه کړه-② ابتلی-مبتلا شو-③ المعاینة-لیدل-④ اختار-غور کړې دې

**تشریح:**- اود حضرت امام ابویوسف رحمه الله نه یو روایت دادې چه مهر لګول او بندول هم شرط نه دی. علامه مرغیناني رحمه الله فرماني چه امام ابویوسف رحمه الله دا آسانیانې هغه وخت پیدا کړې. کله چې امام موصوف پخپله د قضاء په منصب باندې مقرر شو. نو امام ابویوسف رحمه الله د تجربې او مشاهدې نه روسته کوم څه فرمائیلي دي. هغه زیات صحیح

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في فتح القدير (٣٨٧\٦) والكفاية (٣٨٧\٦) والدر المختار (٣٩١\٤) ومجمع الأنهر (١٦٦\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٤١\٢)-



دی. ځکه چې خبر د مشاهدې پشان هیڅ کله هم نشي کیدې. او په خلکو باندې د آسانتیا پیدا کاوه لپاره شمس الائمه سرخسي رحمه الله هم د حضرت امام ابویوسف رحمه الله قول اختیار کړې دې.

## د مکتوب الیه قاضي د خط قبلولو حکم

**قَالَ وَإِذَا وَصَلَ إِلَى الْقَاضِيْ** فرماني. بیا کله چې دا خط مکتوب الیه قاضي ته اورسي. **لَمْ يَقْبَلْهُ إِلَّا بِحَضْرَةِ الْخَصْمِ** نوهغه دې دا نه قبلوي. مګر د مدعي په وړاندې. **لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ أَدَاءِ الشَّهَادَةِ** ځکه چې دا خط د ګواهۍ ادا کاوه په مرتبه کې دې. **فَلَا بُدَّ مِنْ حُضُوْرِهِ** په دې وجه د مدعی علیه حاضریدل ضروري دی.

**حل اللغة:** ① وصل-اورسیږی-② حضرة-موجودګی-③ اداء-ادا کول-④ حضور-موجودګی

**تشریح:**- ابو الحسین قدوري رحمه الله فرماني. چه کله د کاتب قاضي خط مکتوب الیه قاضي ته ملاوشي. نو مکتوب الیه قاضي به دا خط د مدعی علیه په موجودګۍ کې قبلوي. یعنی د مدعی علیه په حاضریدو سره دې دا خط د مدعي یا ګواهانو نه وصول کړي.

① دلیل دادې. چه دا خط د مکتوب الیه په وړاندې د ګواهۍ ادا کاوه په مرتبه کې دې. اود ګواهۍ ادا کاوه په وخت د مدعی علیه موجودیدل ضروري دی. نو ددې خط قبلولو په وخت به هم د مدعی علیه حاضریدل ضروري دی.

② دوهم دلیل دادې. چه د کاتب قاضي خط د شهادة علی الشهادة په مرتبه کې دې. ځکه چې قاضي کاتب د خپل خط په ذریعه د ګواهانو الفاظ مکتوب الیه قاضي اړخ ته منتقل کوی. لکه ځنګه چې فرع شاهد د اصل شاهد د شهادت الفاظ نقل کوی. اود ،،شهادة علی الشهادة،، سماعت لپاره د مدعی علیه موجودیدل ضروري دی. نو دلته کې هم د قاضي خط قبلولو په وخت د مدعی علیه موجودیدل ضروري دی.

**بِخِلَافِ سَمَاعِ الْقَاضِي الْكَاتِبِ** په خلاف د کاتب قاضي د اوریدلو، **لِأَنَّهُ لِلنَّقْلِ لَا لِلْحُكْمِ** ځکه چې دا ګواهي د نقل لپاره ده. د حکم لپاره نه ده.

**حل اللغة:** ① سماع-اوریدل-للنقل- لپاره د نقل کولو-للحکم- لپاره د فیصلې کولو-ولد-بچې

**تشریح:**- ددې په خلاف کله چې قاضي کاتب د ګواهانو نه ګواهي اوري. نو دده د اوریدلو په وخت د مدعی علیه موجودیدل شرط نه دی. که د مدعی علیه په غیرموجودګۍ کې کاتب قاضي د مدعي د ګواهانو ګواهي واوریدله. نو جائز ده. ځکه چې د کاتب قاضي سماعت کول د فیصله کاوه لپاره نه وی. بلکه د شهادت الفاظ منتقل کاوه لپاره وی. نود کاتب قاضي د مدعي د ګواهانو ګواهي اوریدل داسې شو. لکه د شاهد فرع لپاره د شاهد اصل ګواهي اوریدل. او ددې یاد ساتل. یعنی ددې نقل کاوه لپاره تحمل کول. اود شاهد فرع تحمل د شهادت په وخت د مدعی علیه موجود کیدل شرط نه دی. نو دلته کې به هم کله چې کاتب قاضي د مدعي د ګواهانو سماعت اوکړو. نو ددې مدعی علیه موجود کیدل به شرط نه وی.

د قدوري په شرح اقطع کې دی. چه د حضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیز مکتوب الیه قاضي د کاتب قاضي خط د مدعی علیه په موجودګۍ کې هم قبلولې شي. یعنی د قاضي امام ابویوسف رحمه الله په نیز د خط قبلولو په وخت د مدعی علیه موجودیدل شرط نه دی. ځکه چې د خط تعلق مکتوب الیه سره دی. نو مکتوب الیه قاضي به ددې په قبلولو کې د چا د حاضرۍ محتاج نه وی. البته ددې نه روسته کله چې د خط په رڼا کې فیصله ورکوی. نو دغه وخت د مدعی علیه موجودیدل ضروري دی. چه قضاء علی الغائب لازم نشي.

## مکتوب الیه قاضي لپاره د خط د مهر چک کول

**قَالَ فَإِذَا سَلَّمَهُ الشُّهُوْدُ إِلَيْهِ نَظَرَ إِلٰى خَتْمِهِ** فرماني. بیا کله چې (د مدعی علیه په موجودګۍ کې) ګواهان مکتوب الیه قاضي ته دا خط اوسپاري. نو مکتوب الیه قاضي دې ددې مهر اوګوري. **فَإِذَا شَهِدُوْا أَنَّهُ كِتَابُ فُلَانٍ الْقَاضِيْ** بیا کله چې ګواهان ګواهي ورکړي. چه دا خط د فلاني قاضي دې. **سَلَّمَهُ إِلَيْنَا فِيْ مَجْلِسِ حُكْمِهِ وَقَرَأَهُ عَلَيْنَا وَخَتَمَهُ** هغه موږ ته دا خط د حکم او قضاء پخپل مجلس کې سپارلې وو. او موږ ته نې اورولې وو. او خپل مهر نې اولګولو او بند نې

کرو. فَتَحَهُ الْقَاضِي وَقَرَأَهُ عَلَى الْخَصْمِ وَأَلْزَمَهُ مَا فِيهِ نو مکتوب الیه قاضی به دا خلاص کړي او مدعی علیه ته به ئې واوروي. اوکوم څه چې په خط کې دی، هغه به په ده باندې لازم کړي. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ او دا د امام ابوحنیفه او امام محمد رحمهما الله په نیز دی.

حل اللغة: ① سلم-ور کړي-② نظر- ګوري-③ کتاب-خط-④ ختم-مهر ئې اولګولو

تشریح:- ابو الحسین قدوري رحمه الله فرمائي. کله چې د مدعی علیه په موجودګئ کې ګواهانو یا مدعی د قاضی مکتوب الیه ته اوسپارلو. نو قاضی مکتوب الیه به د ټولو نه وړاندې ددې مهر اوګوري. بیاکله چې ګواهان ګواهي ورکړي، چه دا د فلاني د خوی د فلاني ښار د قاضي خط دې. هغه موږ ته دا خط پخپل مجلس قضاء کې اوسپارلو. او موږ ته ئې واورولو. او زموږ په وړاندې ئې مهر اولګولو. اودا ئې بند کړو. نو مکتوب الیه قاضی به دا خط کلاؤ کړي. او مدعی علیه ته به ئې واوروي. اوڅه چې په خط کې لیکلي شوي دی. هغه دې په مدعی علیه باندې لازم کړي. په دې شرط چې د مکتوب الیه قاضي په رائې کې د کاتب قاضي لیکلې شوې فیصله او شهادت د اسلامي شریعت موافق وي. او مدعی علیه سره ددې خلاف څه حجت نه وي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: إِذَا شَهِدُوا أَنَّهُ كِتَابُهُ وَخَاتَمُهُ قَبِلَهُ(١) عَلَى مَا مَرَّ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. چه کله ګواهانو ګواهي ورکړله. چه دا د هغه خط اود هغه مهر دې. نو قاضی مکتوب الیه دې دا قبول کړي. لکه څنګه چې تیرشو.

حل اللغة: ① اذا-کله-② شهدوا-ګواهي ورکړي-③ قبل-قبول کړو-④ مر- تیرشو

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه ذکرشوې ټولې خبرې د طرفینو رحمهما الله مذهب دې. ګني د قاضي امام ابویوسف رحمه الله مذهب وړاندې تیرشو. چه صرف په دې خبره باندې ګواهي کافي ده. چه دا خط د فلاني قاضي دې. اوهم د هغه مهردې. د دومره قدرې ګواهئ نه روسته د مکتوب الیه قاضي لپاره خط قبلول جائز دی. پاته په ذکر شوو امورو کې هیڅ شئ شرط نه دې. لکه چې وړاندې اووئیلی شو. چه «وقال ابویوسف رحمه الله آخرا شئ من ذالك لیس بشرط والشرط أن یشهد هم أن هذا کتابه وخاتمه»

وَلَمْ يُشْتَرَطْ فِي الْكِتَابِ ظُهُورُ الْعَدَالَةِ لِلْفَتْحِ، اود خط کلاوولو (خلاصولو) لپاره د ګواهانو عدالت ښکاره کول شرط نه دی. وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يَفُضُّ الْكِتَابَ بَعْدَ ثُبُوتِ الْعَدَالَةِ، كَذَا ذَكَرَهُ الْخَصَّافُ رَحِمَهُ اللّٰهُ او صحیح دادی. چه د عدالت ښکاره شوی کیدلو نه روسته دې خط کلاؤ کړي. هم دغه ډول امام خصاف رحمه الله ذکر کړی دی. لِأَنَّهُ رُبَّمَا يُحْتَاجُ إِلَى زِيَادَةِ الشُّهُودِ څکه چې کله کله د زیاتو ګواهانو اړتیا راپیښیږي. وَإِنَّمَا يُمْكِنُهُمْ أَدَاءُ الشَّهَادَةِ بَعْدَ قِيَامِ الْخَتْمِ حالانکه د زیاتو ګواهانو ګواهي اداکول به هغه وخت ممکن وي. کله چې مهر قائم وي.

حل اللغة: الفتح-فیصله-یفض-کولاؤکوي-یمکن-ممکن کیداې شي-یحتاج-حاجت پیښیږي

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه شیخ ابوالحسن قدوري رحمه الله پخپل کتاب مختصر القدوري کې د خط کلاوولو لپاره د ګواهانو د عدالت ښکاره کیدلو شرط نه دې ذکرکړې. یعني دا ئې نه دی وئیلي. چه مکتوب الیه قاضي به د ګواهانو عدالت معلومولو نه روسته خط کلاووي. بلکه صرف دا ئې وئیلي دي. چه کله ګواهانو ګواهي ورکړله. چه دا خط د فلاني قاضي دې. هغه موږ ته په مجلس د قضاء کې سپارلې وو. او موږ ته ئې وئیلې او اورولي وو. او زموږ په وړاندې ئې مهر اولګولو. او بند ئې کړو. نو مکتوب الیه قاضي به خط کلاؤ کړي. ددې نه معلومیږي. چه د صاحب قدوري رحمه الله په نیز د خط کلاوولو د پاره د ګواهانو د عدالت ښکاره کول شرط نه دی. بلکه د عدالت په اړه کې معلومات کول اود عدالت ښکاره کیدلو نه بغیر د مکتوب الیه قاضي لپاره خط کلاوول

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كما ظهر من قبل وفي شرط ظهور العدالة الأصح قول محمد رحمه الله كذا في العناية (٣٨٨\٦) والبحر الرائق (٤١٧) نقلاً عن القول الراجح (١١٥١٢)۔



جائز دی. علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه داسې نه ده. بلکه صحیح خبره داده. چه مکتوب الیه قاضي به د ګواهانو د عدالت ښکاره کیدلو نه روسته خط کلاووي. یعني د خط کلاوولو لپاره د ګواهانو عدالت ښکاره کیدل شرط دی. امام خصاف رحمه الله هم داسې ذکر کړی دی. څکه کومو ګواهانو چې خط راخستې او حاضر شوي دي. ددوی د عدالت نه ښکاره کیدلو په وجه ډیر څله مدعي زیات د ګواهانو محتاج وي. په دې طریقه چې مدعی علیه په دې مستور الحال ګواهانو باندې طعن اونکیر اوکړي. اودا اووائي چه نور دوې (دوه) ګواهان دې پیش کړې شي. نو ددې زیاتي ګواهانو لپاره ګواهي اداکول به هغه وخت ممکن وي. کله چې مهر موجود وي. څکه چې زیاتي ګواهان به هم دا ګواهي ورکوي. چه دا د فلاني قاضي خط اود هغه مهر دې. اودا ګواهي هغه وخت کیداې شي. کله چې مهر موجود وي. ګني که مهر اوشلولې شو. نودا ګواهي ورکول به څنګه درست وي چه دا د فلاني قاضي مهر دې.

وَإِنَّمَا يَقْبَلُهُ الْمَكْتُوبُ إِلَيْهِ إِذَا كَانَ الْكَاتِبُ عَلَى الْقَضَاءِ او مکتوب الیه قاضي به دا خط هغه وخت قبلوي. کله چې کاتب قاضي دخپلې د قضاء په عهده باندې موجود وي. حَتَّى لَوْ مَاتَ أَوْ عُزِلَ أَوْ لَمْ يَبْقَ أَهْلًا لِلْقَضَاءِ قَبْلَ وُصُولِ الْكِتَابِ لَا يَقْبَلُهُ تر دې که د خط رسیدلو نه وړاندې هغه مړشو، یا معزول شو، یا د قضاء اهل پاتې نشو نو مکتوب الیه قاضي به د هغه خط نه قبلوي.

حل اللغة: ① کاتب-لیکونکې-② مات-مړ شي-③ یبق-پاته کیږي-④ وصول-رسیدل

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه مکتوب الیه قاضي به ذکرشوې خط هغه وخت قبلوي. کله چې کاتب قاضي د قضاء په منصب باندې قائم وي. که کاتب قاضي مړشو. یا معزول کړې شو. یا لیونئ شو یا بې هوښې یا مرتد کیدل یا دارالحرب ته په تللو یا د بعض حضراتو په نیز د فسق په وجه د قضاء د اهلیت نه خارج کړې شو. حالانکه تراوسه پورې خط مکتوب الیه قاضي ته نه دې رارسیدلې. یا خط رارسیدلې دې خو مکتوب الیه قاضي مدعی علیه ته نه دې اورولې. نودا خط به باطل وي. او مکتوب الیه قاضي به دا نه قبلوي. او ددې مطابق به د مدعی علیه په خلاف هیڅ فیصله نه کوي. حضرت امام ابویوسف، امام شافعي، اوامام احمد رحمهم الله فرمائي چه مکتوب الیه قاضي به په دې حال کې هم خط قبلوي. او ددې مطابق به عمل کوي.

ددې حضراتو دلیل دادې چه، کتاب القاضي الی القاضي،، د،، شهادة علی الشهادة،، پشان دې. څکه چې د کتاب القاضي په ذریعه مکتوب الیه اړخ ته د هغه ګواهانو شهادت منتقل کولې شي. کومو ګواهانو چې د کاتب قاضي په وړاندې ګواهي ورکړې ده. او ګواهي نقل کول په کتابت لیکلو سره مکمل شوې ده. نود خط رسیدلو نه وړاندې د کاتب قاضي مړکیدل، یا د قضاء د اهلیت نه خارج کیدل داسې دي. لکه چې شهود فرع د شهادت اداکولو نه روسته دفیصلې نه وړاندې مړه شوي وي. اود شهود فرع د شهادت اداکولو نه روسته د قاضي د فیصلې ور کاوه نه وړاندې مړینه د قاضي د قضاء لپاره مانع نه دی. بلکه قاضي ددوي د مرګ نه روسته هم ددوی د،، شهادة علی الشهادة،، په بنا (بنیاد) باندې فیصله ورکولې شي. دغه ډول د خط لیکلو نه روسته د مهر وغیره لګولو نه روسته که کاتب قاضي مړشو. نو بیا به هم مکتوب الیه قاضي دا خط قبلوي او په دې باندې به عمل کوي. خو زموږ د اړخه ددې دلیل خواب دادې چه صرف په کتابت او لیکلو سره شهادت نقل کول نه مکمل کیږي. بلکه د شهادت نقل کول به هغه وخت پوره کیږي. کله چې د قاضي خط مکتوب الیه قاضي ته اورسیږي. او مکتوب الیه قاضي دا د مدعی علیه په وړاندې واوروي. نود مکتوب الیه قاضي خط وئیلو او اورولو نه وړاندې د کاتب قاضي مړکیدل داسې دی. لکه چې شهود فرع د شهادت ادا کاوه نه مخکې مړه شي. اوکه شهود فرع د شهادت اداکولو نه مخکې مړه شي. نو قاضي به هیڅ فیصله نه ورکوي. نوهم دغه ډول د مکتوب الیه قاضي خط اورولو نه وړاندې د کاتب قاضي مړکیدل یاد قضاء اهل پاتې نشو. نو بیا به هم مکتوب الیه قاضي به دې خط باندې عمل نه کوي. او هیڅ فیصله به نه ورکوي.

لِأَنَّهُ الْتَحَقَ بِوَاحِدٍ مِنَ الرَّعَايَا، دلیل دا دې چې هغه په رعایاکې یو سړې شو. وَلِهٰذَا لَا يُقْبَلُ إِخْبَارُهُ قَاضِيًا آخَرَ فِي غَيْرِ عَمَلِهِ أَوْ فِي غَيْرِ عَمَلِهِمَا اوهم په دې وجه به دده خبر ورکول دوهم قاضي دده د عمل نه په علاوه کې یا د دواړو د عمل نه په

علاوه کې نه قبلوي.

**حل اللغة:** ① **التحق**-یوځاې شو-② **واحد**-یوعام کس-③ **اخباره**-خبر ورکول-④ **عمل**-عمل کړې وي

**تشریح:**- په خط نه قبلولو باندې د طرفینو ﷫ دلیل دادې.چه د مکتوب الیه قاضي د خط ونیلو او اورولونه وړاندې که کاتب قاضي مړشو.یا معزول کړې شو.یاد جنون وغیره په وجه د قضاء د اهلیت نه خارج کړې شو.نو په رعایا کې یو کس شو.یعنی د عام سړو پشان شو.اوهرکله چې کاتب قاضي حاکم پاتې نشو.بلکه عام سړې شو.نو د خط په ذریعه دده فیصله او حکم به هم نافذ نه وي.ځکه چې د عام سړي هیڅ فیصله نه نافذ کیږي.هم دا وجه ده.که یو قاضي دوهم قاضي ته د خپلې قضاء ولایت (علاقې) نه علاوه په بل ښار کې څه خبر ورکړو.مثلاً دائې اووئیل.چه د فلاني سړي په فلاني سړي باندې حق ثابت دې.نو ددې دوهم ښار قاضي به صرف په دې خبر باندې فیصله نه ورکوي.دغه ډول که دوې (دوه) قاضیان په داسې ښار کې جمع شو.کوم چې د دواړو د قضاء د ولایت نه بهر دی.او په دوی کې یو دوهم ته خبر ورکړي.چه زما په نیز د فلاني په فلاني باندې حق ثابت دې.نو دې په دې خبر باندې عمل نشی کولې.ځکه چې دواړه حضرات په دې ښار کې د عامو سړو پشان دی.اود عامو سړو فیصله شرعاً نه نافذ کیږي.نو ددوی فیصله به هم د خپل ولایتِ قضاء نه علاوه کې نه نافذ کیږي.

**وَكَذَا لَوْمَاتَ الْمَكْتُوبُ إِلَيْهِ** اوهم دغه ډول که مکتوب الیه قاضي مړشو.

**تشریح:**- علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.که د خط رسیدلو نه وړاندې مکتوب الیه قاضي مړشو.نو بیا به هم دا خط بې فائدې وي.او دوهم قاضي کوم چې دده په ځاې مقرر وي.هغه به دا خط نه قبلوي.

حضرت امام شافعي ﷫ فرمائي.چه د مکتوب الیه قاضي د وفات نه روسته چې کوم قاضي دده په ځاې راشي.هغه به دا خط قبلوي.او په دې باندې به عمل کوي.د امام محمد ﷫ هم دا قول دې.حضرت امام شافعي ﷫ فرمائي.که کاتب قاضي دا اولیکل.چه د فلاني ښار قاضي د فلان بن فلان د اړخه په مسلمانانو قاضیانوکې هر هغه قاضي اړخ ته چې دا خط ملاؤ شي.او بیا مکتوب الیه قاضي د خط رسیدلو نه وړاندې مړشي.نو کوم قاضي چې دده په ځاې مقررشي.هغه به بالاتفاق دا خط قبلوي.نو هم دغه ډول که «والی کل من یصل الیه من قضاة المسلمین» نه وي لیکلې.نو په دې صورت کې به هم د مکتوب الیه قاضي (چې مړشوې دې) قائم مقام دا خط قبلوي.

① زمونږ دلیل دادې.چه کاتب قاضي د مکتوب الیه قاضي (چې مړشو) په علم او امانت باندې اعتماد کړې دې.اود بل په علم او امانت باندې ئې اعتماد نه دې کړې.او قاضیان خلګ په امانت ادا کاوه کې متفاوت هم وي.نو په چاچه کاتب قاضي اعتماد کړې دې.هغه خط قبلولې شي.خو دوهم کوم چې دده قائم مقام دې.هغه دا خط نشي قبلولې.

**إِلَّا إِذَا كَتَبَ إِلَى فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ قَاضِي بَلْدَةِ كَذَا وَإِلَى كُلِّ مَنْ يَصِلُ إِلَيْهِ مِنْ قُضَاةِ الْمُسْلِمِينَ** مګر دا چې کله هغه دا لیکلي وي.د فلاني ښار د فلان بن فلان (قاضي) په اړخ اود هر داسې سړي په اړخ چاته هم چې په مسلمانانو قاضیانوکې دا خط ملاؤ شي. **لِأَنَّ غَيْرَهُ صَارَ تَبَعًا لَهُ وَهُوَ مُعَرَّفٌ** ځکه چې مکتوب الیه دغیرمکتوب الیه تابع شو.حالانکه دا غیرهم معلوم دې.

**حل اللغة:** ① **بلدة**-ښار-② **قضاة**-جمع د قاضي-③ **تبعا**-تابع-④ **معرف**-معلوم

**تشریح:**- خو که کاتب قاضي داسې اولیکل.چه د فلاني ښار د فلان بن فلان قاضي په اړخ اود هر داسې قاضي په اړخ کوم مسلمان قاضي ته هم دا خط ملاؤ شي.نود مکتوب الیه قاضي په مرګ سره به دا خط نه لغو کیږي.بلکه کوم قاضي ته چې ملاؤ شو.او مدعی علیه دده په ولایت کې دې.نودغه قاضي به عمل کوي.ځکه چې د مکتوب الیه مړي نه علاوه خوک هم چې دده قائم مقام وي.هغه به د مکتوب الیه تابع وي.حالانکه دا قاضي هم د مکتوب



الیه قائم مقام کیدلو په وجه معلوم دې.نود،، من معلوم الی معلوم،، شرط اوموندې شو.او هرکله چې شرط اوموندې شو.نو خط قبلول به جائز وي.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا كَتَبَ ابْتِدَاءً إِلَى كُلِّ مَنْ يَصِلُ إِلَيْهِ** په خلاف د داسې صورت کله چې په پیل کې داسې اولیکي.چه د هر داسې قاضي په اړخ چاته چې دا خط اورسي. **عَلَى مَا عَلَيْهِ مَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللهُ لِأَنَّهُ غَيْرُ مُعَرَّفٍ** په دې بناء باندې په کوم چې زمونږ مشائخ ﷭ دی.ځکه چې دا مشهور نه دې.

**حل اللغة:** **ابتداء**-په اول کې -**کل**-هریو-**یعمل**-عمل کوي-**مشایخ**-عالمان

**تشریح:**- او که قاضي کاتب په پیل کې دا اولیکل.چه هریو داسې قاضي اړخ ته چې دا خط ملاؤ شي.نودا خط به لغو وي.دا به هیڅ قاضي هم نه قبلوي.هم دا زمونږ د مشائخو مذهب دې.ځکه چې په دې صورت کې مکتوب الیه قاضي مجهول دې.او هرکله چې مکتوب الیه قاضي مجهول دې.نود،،من معلوم الی معلوم،، شرط نه موجود کیدلو په وجه به دا خط قبول نه وي.او په دې به عمل نه کیږي.علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.که مکتوب الیه قاضي ته د خط رسیدلو نه وړاندې مدعی علیه مړشو.نو مکتوب الیه قاضي به دا خط د هغه په وارثانو باندې نافذ کوي.ځکه چې وارث دده قائم مقام دې.

**وَلَوْكَانَ مَاتَ الْخَصْمُ يَنْفُذُ الْكِتَابُ عَلَى وَارِثِهِ** اوکه مدعی علیه مړشو.نو مکتوب الیه قاضي به دا خط دهغه په وارثانو باندې نافذ کوي. **لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ** ځکه چې د هغه وارث د هغه قائم مقام دې.

**حل اللغة:** ① **مات**-مړشو-② **الخصم**-جګړه کونکې-③ **ینفذ**-نافذ کوي-④ **الکتاب**-خط

**تشریح:**- صاحب د هدایه ﷫ فرمائي.که مکتوب الیه قاضي ته د خط رسیدلو نه وړاندې مدعی علیه مړشو.نو مکتوب الیه قاضي به دا خط د هغه په وارثانو باندې نافذ کوي.ځکه چې وارث دده قائم مقام دې.

## په حدود او قصاص کښې د قاضي الی القاضي خط قبلولو حکم

**وَلَا يُقْبَلُ كِتَابُ الْقَاضِي إِلَى الْقَاضِي فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ** او په حدود او قصاص کې به،،کتاب القاضي الی القاضي،،نه قبلیږي. **لِأَنَّ فِيهِ شُبْهَةَ الْبَدَلِيَّةِ فَصَارَ كَالشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ** ځکه چې په دې کې د بدل شبه ده.نود شهادة علی الشهادة پشان شو. **وَلِأَنَّ مَبْنَاهُمَا عَلَى الْإِسْقَاطِ** او ځکه چې ددې دواړو بنا (بنیاد) په ساقطولو باندې دې. **وَفِي قَبُولِهِ سَعْيٌ فِي إِثْبَاتِهِمَا** اود قاضي خط قبلولوکې ددې په ثابتولوکې کوښښ کول دی

**حل اللغة:** **شبهة**-شبه-**البدلیة**-بدلیدو-**مبنا**-بنیاد-**سعی**-کوشش

**تشریح:**- ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي.چه په حدود او قصاص کې ،،کتاب القاضي الی القاضي،،نه قبلیږي.هم دا یو قول د امام شافعي ﷫ هم دې.او امام مالك او امام احمد ﷭ فرمائي.چه په حدود اوقصاص کې به هم ،،کتاب القاضي الی القاضي،، قبلولې شي.دا یو قول د امام شافعي ﷫ هم دې.

① د امام مالك اود امام احمد ﷭ دلیل دادې.چه اعتماد په ګواهانو وي.اوګواهانو د کاتب قاضي په وړاندې ګواهي ورکړله.او ددې خط راوړونکو ګواهانو د مکتوب الیه قاضي په وړاندې ددې د صحت ګواهي ورکړله.نو هرکله چې د فیصلې دارومدار په شهادت دې.او شهادت ورکړې شوې دې.نو په حدود او قصاص کې به هم دکاتب قاضي خط قبلولې شي.او مکتوب الیه قاضي به فیصله ورکوي.

② زمونږ ① دلیل دادې.چه په خط د قاضي کې د بدلیت شبه موجود ده.په دې طریقه چې اصلي ګواهانو دکاتب قاضي په وړاندې ګواهي ورکړې ده.او کاتب قاضي دا لیکلې ده.او مکتوب الیه قاضي اړخ ته ئې منتقل کړې ده.نودا د،،شهادة علی الشهادة،،د قبیلې ځنې شو.او په حدود او قصاص کې ،،شهادة علی الشهادة،، نه قبلیږي.په دې وجه به،،کتاب القاضي الی القاضي،،هم نه قبلیږي. ② دوهم دلیل دادې.چه د حدود او قصاص بنا (بنیاد) په ساقطولو دې.یعنی ممکن کوښښ دا کول پکار دی.چه دا ساقط کړې شي.حالانکه د قاضي خط قبلولوکې ددې ثابتول لازمیږي.په دې وجه حدود او قصاص کې به د قاضي خط نه قبلیږي.

## فصل آخر

ژباړه:- ( دا) دوهم فصل دي.

تشریح:- دا فصل د،،کتاب القاضی الی القاضی،، تتمه ده.خودلته دا اعتراض کیداي شي چې په،،کتاب القاضی الی القاضی،، ددې نه وړاندې بل د فصل ذکر نشته نو بیا دلته د آخر لفظ ولې راوړلی شوي دې صاحب د عنایه ﷫ د دې په خواب کې فرمایي چې دا فاصل د باب ادب القاضی دوهم فصل ګرځول زیات مناسب دی.ځکه چې په ادب القاضي کې ددې نه وړاندې فصل فی الحبس ذکر دې.نو ددې دوهم فصل ګرځول به مناسب وي.

### د ښځې قاضي جوړېدلو حکم

وَيَجُوزُ قَضَاءُ الْمَرْأَةِ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ اود ښځې حکم قضاء په هرڅیزکې جائز ده.علاوه د حدود او قصاص نه. اعْتِبَارًا بِشَهَادَتِهَا.وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ په دې دواړوکې د ښځې په شهادت باندې قیاس کولوسره،او وجه تیره شوې ده.

حل اللغة: المراة-ښځه-اعتبار-قیاس-مو-تیرشوې ده-الوجه-وجه

تشریح:- ابو الحسین قدوری ﷫ فرمائی.چه د حدود او قصاص نه علاوه په هره معامله کې ښځه قاضي جوړول جائز دی.اود حدود او قصاص نه علاوه په هره معامله کې به ددې فیصله نافذ وی.احناف ﷭ هم ددې قائل دی.خو امام مالك، امام شافعي او امام احمد ﷭ فرمائی.چه ښځه په هیڅ معامله کې هم قاضي جوړول جائز نه دی.او ددې فیصله به نه په حدود او قصاص کې نافذ وی.اونه به په بله څه معامله کې نافذ وی.د ائمه ثلاثه دلیل دادې چه ښځه د ناقص العقل کیدلو په وجه د مقدماتو فیصله کاوه اود قاضي په حیثیت عدالت کې د حاضرېدلو اهل نه ده.په دې وجه ددې قاضي جوړول جائز نه دی.د بخاری شریف د حدیث نه هم ددې تائید کیږي.لکه چې رسول الله ﷺ فرمائي. «لن يفلح قوم ولوا أمرهم إمرأة» یعني،، داسې قوم هیڅ چرې فلاح یاب نشي کیدلې.چاچه د خپلو معاملاتو والیان ښځې مقرر کړي وی،،ښځه والي جوړولو باندې د نبي کریم ﷺ د عدم فلاح خبر ورکول، ددې خبرې ښکاره دلیل دې.چه ښځه قاضي اوحاکم جوړول جائز نه دی.

زمونږ دلیل دښځې د قضاء حکم ددې په شهادت باندې قیاس کړې شوې دې.یعنی حکم قضاء د شهادت د حکم نه مستفاد دې.نو کوم کس چې د شهادت اهل دې.هغه به د قضاء اهل هم وی.او څوك چې د شهادت اهل نه دې.هغه به د قضاء اهل هم نه وی.نود ښځې شهادت چونکه د حدود او قصاص نه په علاوه کې جائز دې.په دې وجه د حدود او قصاص نه په علاوه کې به ددې د قضاء حکم هم جائز وی.او په حدود او قصاص کې د ښځې شهادت جائز نه دې.په دې وجه حدود او قصاص کې به ددې د قضاء حکم هم جائز نه وی.

### قاضي لپاره د نائب جوړولو حکم

وَلَيْسَ لِلْقَاضِي أَنْ يَسْتَخْلِفَ عَلَى الْقَضَاءِ او قاضي ته دا اختیار نشته.چه په قضاء باندې خپل خلیفه مقررکړي. إِلَّا أَنْ يُفَوَّضَ إِلَيْهِ ذَلِكَ مګر داکه ده ته دا اختیار سپارلې شوې وی. لِأَنَّهُ قُلِّدَ الْقَضَاءَ دُونَ التَّقْلِيدِ بِهِ ځکه چې ده ته د قضاء عهده سپارلې شوې ده.ده ته د قاضي جوړولو اختیار نه دې ورکړې شوې. فَصَارَ كَالتَّوْكِيلِ الْوَكِيلِ نودا داسې شوه.لکه د وکیل وکیل جوړول.

حل اللغة: ① یستحلف-قسم ورکوی-② یفوض-سپارلې شی-③ قلد-قاضي جوړ کړې شو-④ التقليد-قاضي جوړول

تشریح:- ابو الحسین قدوری ﷫ فرمائی.قاضي ته دا اختیار نه وی.چه دې د عذر په وجه یاد عذر نه بغیر د قضاء په سلسله کې څوك خپل نائب او خلیفه مقررکړي.البته که سلطان او حاکم اعلی ده ته دا اختیار ورکړې دی.نو نائب مقررول جائز دی.امام مالك، امام شافعي او امام احمد ﷭ هم ددې قائل دی.



نودا داسې شوه.لکه د یو وکیل د خپل ځان په ځاې بل څوك وکیل کول.یعنی لکه څنګه چې د مؤکل د اجازت نه بغیر وکیل ته دا اختیار نشته.چه دې بل څوك د ځان په ځاې وکیل مقرر کړي.دغه ډول قاضي ته د سلطان د اجازت نه بغیر دخپل نائب او خلیفه مقررولو اجازت نشته.

بِخِلَافِ الْمَأْمُورِ بِإِقَامَةِ الْجُمُعَةِ حَيْثُ يَسْتَخْلِفُ په خلاف د هغه سړي،چه د جمعې د لمونځ قائمولو لپاره مامور وی.چه دې خپل خلیفه مقررولې شي. لِأَنَّهُ عَلَى شَرَفِ الْفَوَاتِ لِتَوَقُّتِهِ ځکه چې د جمعې لمونځ د وخت محدود کیدلو په وجه د فوت کیدلو په غاړه دې. فَكَانَ الْأَمْرُ بِهِ إِذْنًا بِالْإِسْتِخْلَافِ دَلَالَةً وَلَا كَذَلِكَ الْقَضَاءُ نود جمعې ادا کاوه حکم ورکول،دلالةً د خلیفه مقررولو اجازت دې.اود قضاء دا حال نه دې.

حل اللغة: شرف-نزدې-فوات-فوت کیدل-اذن-اجازت-المامور-مقررشوې

تشریح:- ددې په خلاف که څوك د جمعې د لمونځ ور کاوه لپاره مامور شوې وی.نودې خپل نائب او خلیفه مقررولې شي.اګرچه ده ته سلطان ددې اجازت نه وی ورکړې. ځکه چې د جمعې وخت ډیر تنګ وی.نوکه مامور باقامة الجمعه د څه عذر په وجه د جمعې د لمونځ ور کاوه نه عاجزشي.او ده ته د خلیفه جوړولو اجازت نه وی.نو ترکومه پورې چې دې سلطان او امام المسلمین ته خبر ورکوی.هغه وخته پورې به د جمعې د لمونځ وخت وتلې وی.حالانکه دې د جمعې د لمونځ ادا کاوه لپاره مامور کړې شوې وو.نود سلطان او امام المسلمین چاته د جمعې د لمانځه لپاره اجازت ورکول، دلالةً ددې خبرې هم اجازت ورکول دی.چه په وخت د اړتیا د جمعې د لمونځ ادا کاوه لپاره څوك خپل خلیفه مقررکړي.خودا یاد ساتل پکار دی.چه مامور باقامة الجمعه د جمعې د لمونځ ور کاوه لپاره خپل خلیفه هغه کس مقررولې شي.چاچه د جمعې خطبه اوریدلې وی.ځکه چې خطبه د جمعې د افتتاح د شرائطو څخې ده.اودا حکم هغه وخت دې.کله چې مامور باقامة الجمعه ته د خطبې نه روسته د جمعې د لمونځ پیل کاوه نه وړاندې څه عذر راپیښ شوې وی.اوکه مامور بإقامة الجمعه د خطبې نه وړاندې معذور شو.نوڅوك چې خلیفه مقرر کړي.هم هغه به خطبه ورکوی.او هم هغه به د جمعې لمونځ ورکوی.اوکه مامور باقامة الجمعه د خطبې نه روسته د جمعې لمونځ پیل کړو.او بیا ده ته حدث لاحق شو.نودې چې په مقتدیانو کې څوك غواړي.خلیفه دې مقررکړي.که ده خطبه اوریدلې وی.اوکه خطبه ئې نه وی اوریدلې.ځکه چې په دې صورت کې د خلیفه کار پاته لمونځ پوره کول دی.اوکومه برخه چې مامور باقامة الجمعه ادا کړې ده.هم په هغې بناء کول دی.د جمعې د لمونځ افتتاح کول دده کار نه دې.بلکه افتتاح مامور باقامة الجمعه کړې ده.وړاندې تیرشوی دې.چه خطبه د جمعې د افتتاح د شرائطو څخې ده.د جمعې د بناء په شرائطو کې نه ده.بهرحال لنډیز دادہ.چه د جمعې وخت ډیر تنګ وی.په دې کې دومره ګنجائش نه وی.چه په عذر پیښیدلو باندې سلطان خبر کړې شی.په دې وجه کوم کس چې د جمعې په لمونځ قائمولو باندې مامور وی.هغه ته به د سلطان د اړخه دلالةً ددې اجازت هم وی.چه د اړتیا په وخت څوك خپل خلیفه مقرر کړي.په خلاف د حکم قضاء، چې ددې لپاره هیڅ وخت متعین نه دې.اوهرکله چې کوم وخت متعین نه دې.نو په عذر پیښیدلو باندې د تاخیر په وجه ددې د فوت کیدلو امکان هم پاته نشو.اوهر کله چې د تاخیر په وجه د حکم قضاء فوت کیدلو امکان پاتې نشو.نو قاضي که په حکم قضاء کې څوك خپل خلیفه مقرر کول اوغواړي.نو دده لپاره به د سلطان او حاکم اعلی د اړخه اجازت ضروري وی.د صریحی اجازت نه بغیر به قاضي ته د خپل ځان خلیفه جوړولو اجازت نه وی.

وَلَوْ قَضَى الثَّانِي بِمَحْضَرٍ مِنَ الْأَوَّلِ او که دوهم قاضي د ړومبی قاضي په موجودګۍ کې فیصله ورکړله.یا دوهم قاضي فیصله ورکړله. أَوْ قَضَى الثَّانِي فَأَجَازَ الْأَوَّلُ جَازَ بیا اول ددې اجازت ورکړو.نو جائز دې. كَمَا فِي الْوَكَالَةِ لکه څنګه چې په وکالت کې دی.

حل اللغة: ① محضر-موجودګی-② اجاز-اجازت ورکړو-③ الثاني- دوهم -④ جاز-جائزده

تشریح:- علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.که قاضي د امام المسلمین د اجازت نه بغیر خپل خلیفه اونائب مقرر کړو.اوده په څه مقدمه کې د اصل قاضي په موجودګۍ کې څه فیصله ورکړله.یاد قاضي په غیر موجودګۍ کې ئې

ځه فیصله ورکړله.خو کله چې قاضي ته معلومه شوه.نو قاضي اجازت ورکړو.نو په دې دواړه صورتونو کې به د نائب فیصله جائز او د عمل وړ وي.په دې شرط چې په نائب صاحب کې د قضاء اهليت موجود وي.ددې مثال داسې دی.لکه مثلاً یو وکیل د خپل مؤکل د اجازت نه بغیر څوك دوهم سړې د خپل اړخه وکیل مقرر کړو.او وکیل ثاني د وکیل اول په موجودګئ کې تصرف اوکړو.یاد وکیل اول په غیرموجودګئ کې ئې تصرف اوکړو.خو وکیل اول اجازت ورکړو.نوپه دواړه صورتونوکې د وکیل ثاني تصرف جائز کیږي.نو هم دغه دول په ذکرشوی دواړه صورتونوکې به د نائب قاضي حکم هم جائز او نافذ وي.

وَهٰذَا لِأَنَّهٗ حَضَرَهٗ رَأْيُ الْأَوَّلِ وَهُوَ الشَّرْطُ اودا جواز ځکه دې.چه په دې حکم کې د ړومبي قاضي رائې موجود شوه.او هم دا شرط وو.

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﷫ په مسئله د قضاء او په مسئله د وکالت کې د جواز په دلیل کې فرمائي.چه هرکله خلیفه او نائب داصل قاضي په موجودګئ کې حکم ورکړو.یا د اصل قاضي په غیر موجودګئ کې ئې حکم ورکړې وو.خو اصل قاضي ددې اجازت ورکړو.نو په دې حکم کې د اصل قاضي رائې موجود شوه.اوهم دا د حکم د جواز شرط دې.نوهرکله چې د اصل قاضي رائې (کوم چې د حکم د جواز لپاره شرط ده) موجود شوه.نودا حکم به نافذ وي.هم دا تقریر به په مسئله دوکالت کې کیږي.

وَإِذَا فَوَّضَ إِلَيْهِ يَمْلِكُهٗ اوکله چې بادشاه قاضي ته د خلیفه جوړولو اختیار ورکړې وي.نو قاضي به ددې مالك وي. فَيَصِيْرُ الثَّانِيْ نَائِبًا عَنِ الْأَصِيْلِ او دوهم قاضي به د اصل (بادشاه) نائب وي. حَتّٰى لَا يَمْلِكَ الْأَوَّلُ عَزْلَهٗ تردې چې ړومبي قاضي ته به دده د معزول کاوه اجازت نه وي. إِلَّا إِذَا فَوَّضَ إِلَيْهِ الْعَزْلَ هُوَ الصَّحِيْحُ خوکله ئې چې د معزول کاوه اختیار هم ورکړې وي(نو بیا معزول کولې شي) هم دا صحیح ده.

**حل اللغة:** ① فوض-اوسپارلې شي-② یملك-مالك کیږي-③ یصیر-ګرځي-④ عزل-معزول کړو

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.که سلطان او امام المسلمین قاضي ته د نائب او خلیفه جوړولو اختیار ورکړو.مثلاً سلطان قاضي ته اووئیل.چه «ول من شئت» ،، ته چې څوك غواړې خپل نائب او خلیفه مقرر کړه ،،قاضي ته به دا اختیار حاصل وي.خودا خیال ساتل پکار دی.چه دوهم قاضي کوم چې قاضي اول منتخب کړې دې هغه به د امام المسلمین اود موجوده سلطان نائب وي.هم دا وجه ده.چه قاضي اول ته دده د معزول کاوه اجازت نه وي.ځکه چې دده تقرر د امام المسلمین د اړخه شوې دې.نو دده د معزول کاوه اختیار به هم امام المسلمین ته حاصل وي.البته که امام المسلمین قاضي ته د معزول کاوه اختیار هم ورکړې وي.مثلاً دائې وئیلې وي. «واستبدل من شئت» یعني،، څوك چې غواړې بدله وه،،نود صحیح قول مطابق په دې صورت کې قاضي اول ته د نائب معزول کاوه اجازت هم وي.اوکه سلطان یوکس ته د قاضي القضاة منصب جلیل اوسپارلو.نو ده ته د خپل ماتحت قاضي مقررولو او دده د معزول کاوه پوره پوره حق حاصل دې.ځکه چې قاضي القضاة هغه کس ته وائي.کوم ته چې په قاضیانوکې د معزول کاوه اود منصب ور کاوه اجازت وي.

## د قاضي په عدالت کې د حاکم د حکم پیش کولو مسئله

قَالَ وَإِذَا رُفِعَ إِلَى الْقَاضِيْ حُكْمُ حَاكِمٍ أَمْضَاهُ فرمائي.اوکه یوقاضي ته د حاکم د حکم مرافعه اوکړې شوه.نو قاضي به داحکم نافذ کوي. إِلَّا أَنْ يُخَالِفَ الْكِتَابَ أَوِ السُّنَّةَ أَوِ الْإِجْمَاعَ خوکه دا حکم د کتاب، یا سنت یا اجماع خلاف وي.

**حل اللغة:** ① رفع-یوړې شي-② امضا-نافذ کړي-③ یخالف-مخالفت کوي-④ الکتاب-قران

**تشریح:-** ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي.که د یو قاضي په عدالت کې د یو حاکم د حکم مرافعه اوکړې شوه. یعني اپیل اوکړې شو.نو قاضي به هم هغه مخکنې حکم نافذ کوي.په دې شرط چې د حاکم دا حکم د کتاب الله، سنت



رسول ﷺ اود اجماع خلاف نه وي.که د حاکم حکم په ذکرشوي دلیلونوکې د کوم یو خلاف وي.نو قاضي اعلی چاته چې مرافعه شوې ده.هغه به دا حکم نه نافذ کوي.

① مثلاً ماتحت قاضي د ،،متروك التسمیه عامداً ،، د حلال کیدلو حکم ورکړو.حالانکه دا حکم د الله تعالی د قول ﴿وَلَا تَأْكُلُوْا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ﴾ خلاف دې.

② یامثلاً ماتحت قاضي دا حکم ورکړو.چه مطلقه ثلاثه د وطی نه بغیر صرف زوج ثاني سره په نکاح کاوه ړومبي میړه لپاره حلاله شوې ده.حالانکه دا حکم د حدیث رفاعة «لا حتی تذوقي من عسیلته ویذوق من عسیلتك» خلاف دې.

③ یا مثلاً ماتحت قاضي د نکاح متعه د حلال کیدلو حکم ورکړو.حالانکه دا حکم د اجماع صحابه ﷺ خلاف دې.نوکه په دې صورتونوکې د قاضي اعلی په عدالت کې اپیل اوکړې شو.نو قاضي اعلی به د ماتحت قاضي داحکم نه نافذ کوي.کوم چې د کتاب الله، یا سنت رسول ﷺ یا د اجماع خلاف دې.

بِأَنْ يَكُوْنَ قَوْلًا لَا دَلِيْلَ عَلَيْهِ په دې طریقه چې داسې قول وي.چه په دې باندې هیڅ دلیل موجود نه وي (نو بیا به نې نه نافذوي).

**تشریح:-** د قدوري عبارت «بأن یکون قولاً لا دلیل علیه» کې د یوې نسخې مطابق هم دا عبارت دې.اود قدوري په بعض نسخوکې «أو یکون قولاً لا دلیل علیه» عبارت دې.نود «أو یکون قولاً لا دلیل علیه» نسخې مطابق به د عبارت مطلب داوي.که د اعلی قاضي په عدالت کې د ماتحت قاضي د کومې فیصلې اپیل اوکړې شو.نو قاضي اعلی به هم دا فیصله نافذ کوي.خوکه د ماتحت قاضي فیصله د قرآن، حدیث یا اجماع خلاف وي.لکه چې وړاندې ددې مثالونه تیرشو.یاد ماتحت قاضي حکم داسې قول وي.چه په دې باندې هیڅ دلیل نه وي. (مثلاً ماتحت قاضي دولس کاله تیریدلو باندې په مطالبه کې د تاخیر په وجه د قرضدار د ذمې نه د پور ساقطولو حکم ورکړو.اودا داسې قول دې.چه په دې باندې هیڅ دلیل شرعي نشته) نو په دې صورتونوکې به قاضي اعلی د ماتحت قاضي فیصله نه نافذ کوي.اود «بأن یکون قولاً لا دلیل علیه» نسخې مطابق به دا عبارت د «إلا أن یخالف الکتاب......الخ» علت واقع وي.او مطلب به دا وي.چه د ماتحت قاضي فیصله که د کتاب الله ، حدیث یا اجماع خلاف وي.نو قاضي اعلی به دا نه نافذ کوي.ځکه چې دا فیصله داسې قول دې.چه په دې باندې هیڅ دلیل نشته.اوپه کومه فیصله چې دلیل شرعي موجود نه وي. هغه د نافذ کاوه قابل نه وي.په دې وجه به دا فیصله هم قابل تنفیذ نه وي.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ الْفُقَهَاءُ او په جامع صغیر کې دی.چه په کومه مسئله کې فقهاؤ اختلاف اوکړو. فَقَضٰى بِهِ الْقَاضِيْ بیا یو قاضي په دې کې حکم اوکړو. ثُمَّ جَاءَ قَاضٍ آخَرُ يَرٰى غَيْرَ ذٰلِكَ أَمْضَاهُ بیا دوهم قاضي راغی.چه دهغه رائې دده خلاف ده.نو هغه به هم ړومبې حکم نافذ کوي.

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.چه په جامع صغیر کې دا مسئله په دې طریقه ذکر ده.که په یوه مسئله کې د فقهاؤ اختلاف وي.اویو قاضي په دې کې حکم ورکړو.بیا دوهم قاضي راغی.چه دده رائې د هغه خلاف ده.نو دوهم قاضي به هم هغه فیصله نافذ کوي.کومه چې قاضي اول ورکړې ده.په دې شرط چې د قاضي اول ورکړې شوې فیصله د کتاب الله، یاحدیث یا اجماع خلاف نه وي.

وَالْأَصْلُ أَنَّ الْقَضَاءَ مَتٰى لَاقٰى فَصْلًا مُجْتَهَدًا فِيْهِ يُنْفِذُهٗ وَلَا يَرُدُّهٗ غَيْرُهٗ او قاعده کلیه داده.چه کله په یو مختلف فیه صورت کې حکم قضاء لاحق کیږي.نو هغه نافذ کیږي.او دوهم حاکم دا نشي ردکولې.

**حل اللغة:** الاصل-قاعده-لاقی-لاحق شي-ینفذ-نافذ کیږي-لایرد-نه رد کوي

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.چه د قاضي اول فیصله که د کتاب الله، یاسنت رسول ﷺ یا د اجماع خلاف نه وي. نود قاضي اعلی ددې فیصله نافذ کاوه او نه نافذ کاوه په سلسله کې قاعده کلیه داده.که په یو مختلف فیه مسئله کې قاضي کوم حکم ورکړې وي.نو هغه به نافذ وي.قاضي اعلی (چاته چې مرافعه شوې ده) ته به ددې د رد کاوه یا باطل کاوه اجازت نه وي.

لِأَنَّ اجْتِهَادَ الثَّانِي كَاجْتِهَادِ الْأَوَّلِ، دليل دا دي چې د دوهم اجتهاد د ړومبی (قاضي) د اجتهاد پشان دي. وَقَدْ تَرَجَّحَ الْأَوَّلُ بِاتِّصَالِ الْقَضَاءِ بِهِ او ړومبی اجتهاد سره حکم د قضاء متصل شوې دي. نو دې ته ترجيح ورکړې شوه. فَلَا يُنْقَضُ بِمَا هُوَ دُونَهُ نودا به په داسې اجتهاد سره نه ماتيږي. کوم چې ددې نه کمتر وي.

**حل اللغة:** يرجح-ترجيح ملاويږي-اتصال-متصل کيدل-لاينقض-نه ماتيږي-دون-کم

**تشريح:**- دليل دا دي چې د قاضي اعلی اجتهاد د قاضي اول د اجتهاد پشان دي. يعنی لکه څنګه چې د قاضي اول په اجتهاد کي د خطاء احتمال دي. هم دغه ډول د قاضي اعلی په اجتهاد کي هم د خطاء احتمال دي. ځکه چې هيڅ څوک مجتهد حتمي طور باندې خپل اجتهاد ته صحيح او د بل اجتهاد ته غلط نشي ويلې. نو په دې اعتبار سره د دواړه قاضيانو اجتهاد برابر دي. خود قاضي اول اجتهاد سره چونکه حکم قضاء لاحق شوې ده. اود قاضي اعلی (چاته چې مرافعه شوې ده) اجتهاد سره حکم قضاء لاحق شوې نه ده. په دې وجه د قاضي اول اجتهاد د اعلی او اقوی درجې شو. اود دوهم اجتهاد د ادنی درجې شو. اودا خبره منلې شوې ده. چه اعلی د ادنی په وجه نشي ردکولې. په دې وجه به قاضي اعلی باندې د قاضي اول فيصله نافذول واجب وي. او قاضي اعلی ته به د قاضي اول فيصله ماتولو او رد کاوه اجازت نه وي.

علامه بدرالدين عيني ؒ صاحب د بنايه ليکلي دي. چه د حضرت عمر ؓ د عمل نه هم ثابتيږي. که يو مسئله مجتهد فيه وي. او يو قاضي د کوم فقيه د اجتهاد موافق فيصله ورکړې وي. نو قاضي اعلی چاته چې مرافعه شوې ده. هغه به هم دغه فيصله نافذ کوي. ددې د ردکولو اجازت به نه وي. لکه نقل دي. چه اميرالمؤمنين حضرت عمر ؓ کله د خلافت په امورو کي زيات بوخت شو. نو دوی ؓ حضرت ابوالدرداء ؓ قاضي مقرر کړو. د حضرت ابوالدرداء ؓ په عدالت کي يوه مقدمه پيش شوه. دوی په فريقينو کي د يو په حق کي فيصله ورکړله. بيا د حضرت عمر ؓ هغه سړی سره ملاقات اوشو. د چا په خلاف چې ابوالدرداء فيصله ورکړې وه. حضرت عمر ؓ د هغه دحال پوښتنه اوکړو. هغه اووئيل. ابوالدرداء ؓ زما خلاف فيصله ورکړې ده. حضرت عمر ؓ اوفرمائيل. ﴿لو کنت مکانه لقضيت﴾ که د هغه په ځائې زه ووم. نو ما به ستا په حق کي فيصله ورکړې وه. هغه اووئيل. ستا د فيصلې ور کاوه نه کوم شی مانع دي؟ يعنی تاسو د ابوالدرداء ؓ فيصله ماته کړئ. او دويمه فيصله ورکړئ؟ حضرت عمر ؓ اوفرمائيل. ﴿ليس هنا نص والرأی مشترك﴾ يعنی په دې مسئله کي هيڅ نص موجود نه دي. او رائې مشترك ده. يعنی کله چې کوم نص موجود نه وي. نود ټولو مجتهدينو رائې برابر ده. قاضي چې د کوم مجتهد د رائې موافق فيصله ورکوی. د هغې نافذ کول به ضروری وی. قاضي اعلی ته ددې د رد کاوه اجازت نه وي. اوګورئ. اميرالمؤمنين ؓ د خپل ماتحت قاضي د حضرت ابوالدرداء ؓ ورکړې شوې فيصلې خلاف فيصله ور کاوه نه څنګه خان ساتلې دي.

**د قاضي په هيره باندې په مجتهد فيه مسئله کښې په بل مذهب باندې د فيصله کولو حکم**

وَلَوْ قَضَى فِي الْمُجْتَهَدِ فِيهِ مُخَالِفًا لِرَأْيِهِ نَاسِيًا لِمَذْهَبِهِ او که قاضي په يو مجتهد فيه مسئله کي د خپلې رائې خلاف خپل مذهب هير کړو. او فيصله ئې ورکړله. نَفَذَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ. نود امام ابوحنيفه ؒ په نيز به دا نافذ وي. وَإِنْ كَانَ عَامِدًا فَفِيهِ رِوَايَتَانِ او که قصداً ئې داسې اوکړل. نو په دې کي دوې (دوه) روايتونه دي.

**حل اللغة:** ① ناسيا-هيرونکي-② عامدا-په قصد کونکي-③ نفذ-نافذ وی-④ مخالفا-مخالف

**تشريح:**- ابو الحسين قدوری ؒ فرمائي. که په يو مجتهد فيه مسئله کي قاضي خپل مذهب هير کړو. اود خپلې رائې خلاف ئې حکم ورکړو. نود امام ابوحنيفه ؒ په نيز به د قاضي دا حکم نافذ وي. اوکه په قصد ئې داسې اوکړل. نو په دې اړه کي د امام ابوحنيفه ؒ نه دوې (دوه) روايتونه دي. ① د يو روايت مطابق په دې صورت کي به هم د قاضي حکم نافذ وی. ددې روايت مطابق به صدرالشهيد او شيخ ظهير الدين ؒ فتوی ورکوله. ② اوبه يو روايت د قاضي دا حکم به نافذ نه وي. په دې روايت باندې به شمس الائمه او جندی ؒ فتوی ورکوله.



وَوَجْهُ النَّفَاذِ أَنَّهُ لَيْسَ بِخَطَأٍ بِيَقِينٍ اود نافذ کيدلو وجه دا ده. چه دا حکم په يقيني طور باندې خطا نه دي.

**تشريح:**- د نافذ کيدلو وجه دا ده. چه قاضي د خپل مذهب خلاف کوم حکم ورکړې دي. هغه قطعي طور باندې غلط نه دي. ځکه چې د قاضي رائې اګرچه دده په نيز په ښکاره صواب دي. خود خطاء احتمال هم دي. او ددې نه د علاوه رائې دده په نيز اګرچه غلط ده. خو احتمال د صواب هم پکي شته. نو معلومه شوه. چه په دواړوکي دچا رائې هم يقيني طور باندې خطاء نه ده. اوهر کله چې په دواړوکي دچا رائې ته يقيني طور باندې نه خطاء وئيلې کيداې شي. او نه صحيح وئيلې کيدلې شي. نود قاضي حکم په مجتهد فيه صورت کي شو. او په مجتهد فيه صورت کي د قاضي حکم په هر صورت کي نافذ وی. که دده د مذهب خلاف وی. اوکه موافق وی. په دې وجه د قاضي ذکرشوې حکم (اګرچه دده د مذهب خلاف دي) نافذ به وی. اود نه نافذ کيدلو وجه دا ده. چه هر کله قاضي په قصد سره د خپل مذهب خلاف فيصله ورکړې ده. نو ګويا ده ته د خپلې ورکړې شوې فيصلې د غلط او فاسد کيدلو ګمان دي. اود هر سړی په حق کي چونکه دده د ګمان مطابق معامله کولې شي. په دې وجه د قاضي د ګمان مطابق به دده فيصله فاسد ګرځولې شي. اودا به نشي نافذ کولې. لکه مثلاً په يو کس باندې قبله مشتبه شوه. او دده تحري يو اړخ ته واقع شوه. خو ده ددې خلاف بل اړخ ته مخ کړو. او لمونځ ئې اداکړو. نو دده لمونځ به صحيح نه وی. ځکه چې دده په اعتقاد کي دا اړخ غلط دي. نودغه ډول دلته کي به هم د قاضي فيصله کومه چې دده د مذهب خلاف ده. دده په اعتقاد کي د غلط کيدلو په وجه نه نافذ کيږي.

وَعِنْدَهُمَا لَا يَنْفُذُ فِي الْوَجْهَيْنِ[1] اود صاحبينو ؒ په نيز به په دواړه صورتونوکي نشي نافذ کولې. لِأَنَّهُ قَضَى بِمَا هُوَ خَطَأٌ عِنْدَهُ ځکه چې ده داسې شي سره فيصله ورکړې ده. کوم چې دده په نيز خطاء دي. وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى او هم په دې فتوی ده.

**تشريح:**- صاحبين ؒ فرمائي. چه قاضي د خپل مذهب خلاف په هيره فيصله ورکړي. او يا ئې په قصد سره فيصله ورکړي. په دواړه صورتونوکي به دده فيصله نافذ نه وی. هم دا د امام مالك، امام شافعي او امام احمد ؒ مذهب دي. اود علامه ابن الهمام ؒ فتوی هم په دې ده. ځکه قاضي چې کومه فيصله ورکړې ده. هغه دده په نيز غلط او خطاء ده. او سړی سره چونکه دده دګمان مطابق معامله کولې شي. په دې وجه به دده د ګمان مطابق دده دا فيصله غلطه او خطاء وی. او غلطه فيصله چونکه ناقابل تنفيذ وی. په دې وجه به دا فيصله نافذ کولې شي.

ثُمَّ الْمُجْتَهَدُ فِيهِ أَنْ لَا يَكُونَ مُخَالِفًا لِمَا ذَكَرْنَا بيا مجتهد فيه هغه دي. کوم چې د پورته ذکر شوی نه خلاف وی.

**تشريح:**- علامه مرغيناني ؒ فرمائي. چه مجتهد فيه مسئله هغې ته وائي. کومه چې د کتاب الله، سنت مشهوره او اجماع خلاف نه وی. او پخپله په دې باندې څه اختلاف نه وی. لکه مثلاً ﴿وَلَا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ﴾ يعنی په نکاح کي مه راولئ کومې ښځې چې په نکاح کي راوستې دي ستاسو پلارانو. ددې آيت په مراد باندې د ټولو سلفو اتفاق دي. چه کومې ښځې سره پلار نکاح اوکړله. او بيا ئې دې ته طلاق ورکړو. نود عدت تيريدلو نه روسته خوی سره ددې نکاح ناجائز ده. لنډيز داچه په دې آيت کي ميرنې مور (د پلار منکوحه) په حرمت باندې د ټولو سلفو اتفاق دي. دغه ډول د پلار موطوءه وينځې سره ئې د نکاح د جواز حکم ورکړو. نوهغه قاضي (چاته چې مرافعه اوکړې شوه) به دا حکم باطلوی.

وَالْمُرَادُ بِالسُّنَّةِ الْمَشْهُورَةُ مِنْهَا اود سنت نه مراد هغه سنت دي. کوم چې مشهور وی.

**تشريح:**- اود سنت نه مراد سنت مشهوره دي. يعنی کوم سنت چې په صحابه او تابعينوکي د شهرت درجې ته رسيدلې وی. او مونږ ته ددې نقل په صحيح او مشهور سند سره رارسيدلې وی. نوکه قاضي دداسې سنت مشهوره خلاف فيصله ورکړې وی. نو قاضي اعلی چاته چې مرافعه شوې ده. هغه به دا فيصله باطلوی.

[1] القول الراجح هو هذا قول الصاحبين ؒ كذا في ردالمحتار (٣٧٢\٤) نقلاً عن القول الراجح (١١٥\٢)-

وَمَا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ الْجُمْهُورُ او په کوم امر چې جمهورو اتفاق کړې وی. لَا يُعْتَبَرُ مُخَالَفَةُ الْبَعْضِ په هغې کې به د بعضو مخالفت معتبر نه وی. وَذٰلِكَ خِلَافٌ وَلَيْسَ بِاخْتِلَافٍ اودا خلاف دې اختلاف نه دې.

تشريح:- اود اجماع نه مراد هغه دې.چه په هغې باندې جمهور اسلاف يعنى اكثر او اوچت عالمان متفق وى.يعنى په کوم امر چې اكثرو او جمهورو عالمانو اتفاق کړې وی.او قاضى د هغې خلاف فيصله ورکړله.نو قاضى اعلى چاته چې مرافعه شوې ده.هغه به دا ماتوى.ځکه چې دا فيصله د اجماع خلاف ده.
كه په يوه مسئله باندې د اكثرو اتفاق شو.او بعض عالمانو ددې مخالفت اوکړو.نو ددې بعض مخالفت به معتبر نه وى.ځکه چې د بعض مخالفت كاوه ته اختلاف نه وائى.بلکه خلاف ونيلې شى.او په شريعت اسلام کې اختلاف معتبر دې.خو خلاف معتبر نه دې.په خلاف او اختلاف کې ① توپير دادې.چه په خلاف کې طريقه هم مختلف وى.او مقصود هم مختلف وى.او په اختلاف کې طريقه مختلف وى.خو مقصود متحد وى.② دوهم فرق دادې.چه د اختلاف بنا (بنياد) په دليل وى.اود خلاف بنا (بنياد) په عناد وى.يعنى د خلاف لپاره هيڅ دليل نه وى.

وَالْمُعْتَبَرُ الِاخْتِلَافُ فِي الصَّدْرِ الْأَوَّلِ اود صدر اول اختلاف معتبر دې.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د يوې مسئلې د مجتهدفيه كيدلو لپاره هغه اختلاف معتبر دې.کوم چې په صدر اول کې وى.يعنى په صحابه او تابعينو کې وى.اود دوى نه د روستو خلګو اختلاف معتبر نه دې.مثلاً د احنافو او شوافعو رحمهم الله په منځ کې كه په يوه مسئله کې اختلاف وى.اود صدراول په حضراتو کې اختلاف نه وى.نودې مسئلې ته مجتهدفيه نشى ونيلې.نوهم په دې وجه كه يو شافعى يا مالكى پخپله رائې د صدراول د حضراتو د رائې خلاف فيصله ورکړله.بيا قاضى اعلى ته ددې مسئلې مرافعه اوکړې شوه.اودا حکم د قاضى اعلى د رائې هم خلاف وى.نو قاضى اعلى به دا حکم ماتوى.

### په ظاهره د حرمت فيصله کولو باندې د باطن حکم

قَالَ وَكُلُّ شَيْءٍ قَضٰى بِهِ الْقَاضِي فِي الظَّاهِرِ بِتَحْرِيمِهِ فَهُوَ فِي الْبَاطِنِ فرمائى.او هرداسې شئ چې قاضى په ظاهر کې ددې د حراميدلو حکم ورکړو. كَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ [1] نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په باطن کې هم داسې وى. وَكَذَا إِذَا قَضٰى بِإِحْلَالٍ او هم دغه ډول كه قاضى د يوځيز د حلال كيدلو حکم ورکړو.

حل اللغة: ① قضى-فيصله اوکړې-② تحريم-حرامول-③ الباطن-پټ-④ احلال-حلالول

تشريح:- دنفس مسئلې د بيان نه وړاندې د تمهيد په شکل دوې (دوه) خبره قابلې د زده کړې دى.هغه دا چې نفاذ په دوې (دوه) قسمه دې ① يونفاذ ظاهرى يعنى چې حکم فى ما بين الناس نافذ کړې شى. مثلاً د ګواهئ په بنا (بنياد) باندې قاضى حکم ورکړو.چه آمنه د خالد ښځه ده.نو ددې د ظاهر كيدلو مطلب دادې.چه ښځه پخپله ځان خالد ته اوسپارى.او خالد ددې نان نفقه اداکړې. ،،فيمابينه وبين الله،، ② دوهم ډول دې نفاذ باطنى يعنى چې ،،فيمابينه وبين الله،، نافذ وى.په ذکرشوى مثال کې دخالد لپاره آمنه سره وطى کول حلال شو.اود آمنه لپاره ځپل ځان باندې خالد ته قدرت ورکول حلال شو.نود دمتن په مسئله کې د قاضى د فيصلې نه روسته دغه فيصله دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ظاهره او په باطن دواړو طريقو سره نافذ ده .

وَهٰذَا إِذَا كَانَتِ الدَّعْوٰى بِسَبَبٍ مُعَيَّنٍ اودا حکم هغه وخت دې.کله چې دعوه په يو معين سبب سره وى.

تشريح:- البته دومره ده چې دا مسئله په هغه صورت کې ده چې دعوى په سبب معين کې وى دسبب معين نه مراد

[1] لكن الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله من عدم نفاذ قضاء القاضى ظاهراً وفائده ان وطى الزوج الثانى زنا كذا فى الدرالمنتقى (۲۳۷/۳) والبحر(۱۴/۷)و ردالمحتار(۳۷۰/۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۱۱۶/۲)-



دا دې چې دا ملك مقيد وى يعنى د املاكو دوې (دوه) قسمونه دى. ① يوته ملك مقيد ملك ته وائى. دا هغه دې چې په کې سبب د ملك ذکر وى.مثلاً يوکس دعوه اوکړله چه فلانئ وينځه ما اخستې ده.په دې وجه دا زما مملوکه ده .يا ماته په وراثت کې ملاؤ شوې ده.په دې وجه زه ددې مالك يم.نودې ته ملك مقيد ونيلې شى. ② او دوهم ډول هغه ملك دې چې په هغې کې سبب د ملك ذکر نه وى مثلاً يوکس په يوه وينځه د ځپل ملك دعوه اوکړله.اود مالك كيدلو سبب يعنى شراء وغيره ئې ذکر نکړو.نودې ملك ته مرسل او مطلق ونيلې شى.نوبه دې ډول کې كه قاضى د دروغو په ګواهئ باندې حکم ورکړو.نود قاضى داحکم به بالاجماع په باطن کې نه نافذ كيږى.
اوكه د دروغو ګواهئ په بنا (بنياد) باندې قاضى د املاك مقيده په اړه کې څه حکم ورکړو.مثلاً كه يو سړى په يوې ښځې باندې د نکاح د دروغو دوې (دوه) ګواهان پيش کړل.حالانکه ښځه د نکاح نه منکره ده.بيا قاضى د نکاح حکم ورکړو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د امام ابويوسف رحمه الله د قول اول په بنا (بنياد) باندې د قاضى دا فيصله ظاهراً او باطناً دواړه شان به نافذ وى.يعنى ميړه لپاره وطى کول، اود ښځې قابو ورکول حلال دى.اود امام ابويوسف رحمه الله د دوهم قول په بنا (بنياد) اود امام محمد ، امام مالك، امام شافعى،اود امام احمد رحمهم الله په نيز د قاضى دا حکم به ظاهراً نافذ وى.خو باطناً به نافذ نه وى.يعنى د سړى لپاره وطى کول اود ښځې لپاره به قابو ورکول حلال نه وى.

وَهِيَ مَسْأَلَةُ قَضَاءِ الْقَاضِي فِي الْعُقُوْدِ وَالْفُسُوْخِ بِشَهَادَةِ الزُّوْرِ او هم دا په دروغو ګواهئ باندې په عقود اوفسوخ کې د قاضى د قضاء مسئله ده. وَقَدْ مَرَّتْ فِي النِّكَاحِ اودا په کتاب النکاح کې تيرشوى دى.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه ددې مسئلې عنوان «قضاء قاضى فى العقود والفسوخ بشهادة الزور» دې.يعنى د درغو ګواهئ باندې عقود او فسوخ کې د قاضى فيصله د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اود امام ابويوسف رحمه الله په قول اول باندې ظاهراً او باطناً دواړه شان نافذ كيږى.اود امام ابويوسف رحمه الله په قول آخر باندې د امام احمد ، او امام مالك، امام شافعى، اود امام احمد رحمهم الله په نيز ظاهراً نافذ كيږى.خو باطناً به نافذ نه وى.ددې زيات تفصيل د اشرف الهدايه څلورم ټوك كښې کتلې شى.

### په غائب باندې د قاضى د فيصلې حکم

قَالَ وَلَا يَقْضِي الْقَاضِي عَلٰى غَائِبٍ فرمائى.او قاضى به په يوغائب باندې حکم نه ورکوى. إِلَّا أَنْ يَحْضُرَ مَنْ يَقُوْمُ مَقَامَهُ مګر داچه د هغه قائم مقام حاضر وى.

تشريح:- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائى.كه مدعى عليه غائب وى.كه د ښار نه غائب وى.اوكه په ښار کې پټ وى.خود قاضى د مجلس نه غائب وى.نو زموږ په نيز قاضى د بينه په وجه نه دده خلاف حکم ورکولې شى.اونه دده موافق حکم ورکولې شى.يعنى د غائب مدعى عليه په خلاف او موافق دواړه شان فيصله ورکول ناجائز دى.كه قاضى د غائب خلاف يا موافق څه فيصله ورکړله.نودا به نشى نافذکولې.كه د مدعى عليه غائب څوك قائم مقام موجود وى.مثلاً دده وكيل وى.يا وصى وى.نو په دې صورت کې زموږ په نيز قضاء على الغائب جائز ده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يَجُوْزُ او امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه په غائب باندې حکم کول جائز دى. لِوُجُوْدِ الْحُجَّةِ وَهِيَ الْبَيِّنَةُ ځکه چې حجت موجود دې.او هغه بينه دى. فَظَهَرَ الْحَقُّ نو حق ښکاره شو.

تشريح:- حضرت امام شافعى رحمه الله فرمائى.كه مدعى عليه د ښار نه غائب وى.اوكه په ښار کې پټ وى.خود قاضى د مجلس نه غائب وى.نو په ده باندې فيصله ورکول جائز دى.د امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم دا قول دې.
د قضاء على الغائب په جواز باندې د حضرت امام شافعى رحمه الله ① دليل دادې.چه هادى عالم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى. «البينة على المدعى واليمين على من انكر» يعنى د قاضى د فيصلې بنا (بنياد) او ترتيب دادې.كه مدعى بينه پيش کړى.نو فيصله به دده په حق کې كيږى.اوكه مدعى بينه پيش نکړې شو.نود مدعى عليه څخه به قسم اخستلې

شي.اود مدعی خلاف به د مدعی علیه موافق فیصله ورکړې کیږي.په ذکرشوی حدیث کې د مدعی علیه د حاضرولو شرط ذکر نه دې.نود مدعی علیه حاضری شرط ګرځول په حدیث د رسول ﷺ باندې بې دلیله زیادت کول لازمیږي.حالانکه دا ناجائز دی.نو هرکله چې په ذکرشوې مسئله کې د مدعی د اړخه بینه پیښ کړې شو.نو حجت شرعی اوموندې شو.اوهرکله چې حجت شرعی اوموندې شو.نو حق ښکاره شو.اوهرکله چې حق ښکاره شو.نوقاضی لپاره د حق موافق یعنی د مدعی موافق فیصله ورکول جائز شو.که مدعی علیه حاضر وي.اوکه غائب وي.

وَلَنَا أَنَّ الْعَمَلَ بِالشَّهَادَةِ لِقَطْعِ الْمُنَازَعَةِ، او زموږ دلیل دادې.چه په شهادت باندې عمل کول د جګړې ختمولو لپاره وي. وَلَا مُنَازَعَةَ دُونَ الْإِنْكَارِ وَلَمْ يُوجَدْ اود انکار نه بغیر جګړه نه کیږي.او انکار اونه موندې شو.

حل اللغة: القطع-ختمیدل-المنازعة-جګړه-دون-بغیر-الشهادة-ګواهي

تشریح:- د قضاء علی الغائب په عدم جواز باندې زموږ دلیل دادې.چه د بینه په دې طریقه حجت کیدل چې په دې باندې عمل کول واجب وي.په دې موقوف دی.چه منکر یعنی مدعی علیه د بینه په دفع کاوه او په دې کې د طعن کاوه نه عاجز وي.اود مدعی علیه عاجزکیدل به هغه وخت معلومیږي.کله چې مدعی علیه پخپله موجود وي.یا دده نائب موجود وي.نوهرکله چې مدعی علیه اودده نائب دواړه غائب وي.نو دده عجز به نه معلومیږي.اوهرکله چې دده عجز معلوم نشو.نود بینه حجت شرعی کیدل به هم نه ثابتیږي.اوهرکله چې د مدعی علیه اونائب په غیرموجودګۍ کې د بینه حجت شرعی کیدل ښکاره نشو.نو ددې بینه په وجه د مدعی په حق کې د قاضی فیصله به هم ټیک نه وي.ددې دلیل نه معلومه شوه.چه قضاء علی الغائب ناجائز ده.

وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْإِقْرَارَ وَالْإِنْكَارَ مِنَ الْخَصْمِ او ځکه چې د مدعی علیه اړخ نه د انکار او اقرار دواړو احتمال دې. فَيَشْتَبِهُ وَجْهُ الْقَضَاءِ نود قضاء په وجه مشتبه شو. لِأَنَّ أَحْكَامَهُمَا مُخْتَلِفَةٌ ځکه چې د دواړو احکام مختلف دی.

تشریح:- دوهم دلیل کوم چې علامه مرغینانی ﷫ ذکرکړې دې.دادې.چه په شهادت او بینه باندې عمل صرف د جګړې ختمولو لپاره جائز دې.اوجګړه به هغه وخت پیداکیږي.کله چې مدعی علیه د مدعی د دعوې نه انکار اوکړي.اود مدعی علیه په غیرموجودګۍ کې انکار نه موجودکیږي.نوهرکله چې د مدعی علیه غائب کیدلو په وجه انکار اونه موندې شو.اود انکار نه موجودکیدلو په وجه جګړه پیدا نشوه.نو په شهادت به عمل کول هم جائز نه وي.یعنی د مدعی علیه په غیرموجودګۍ کې که قاضی فیصله ورکړله.نودا به نافذ نه وي.او په دې به عمل کول جائزنه وي.ددې دلیل نه هم ثابته شوه.چه قضاء علی الغائب جائز نه ده.

❓ دلته کې دا اشکال کیداې شي.که مدعی علیه حاضر وي.اود مدعی په دعوه باندې سکوت اوکړي.او قاضی د مدعی په بینه باندې فیصله ورکړي.نودا فیصله به واجب العمل او قابل تنفیذ وي.نود انکار او جګړې نه بغیر شهادت باندې عمل کول موجود شو.حالانکه تاسو فرمانیلی دی.چه د جګړې نه بغیر په شهادت باندې عمل کول جائز نه دې.او جګړه دانکار نه بغیر نه کیږي؟ ددې ځواب دادې.چه دلته کې د مدعی علیه سکوت د انکار په مرتبه کې دې.ځکه چې د مسلمان ښکاره حال دادې.که په ده باندې دچا څه حق وي.چه سکوت اونکړي.بلکه د هغې اقرار اوکړي.نود مدعی علیه سکوت کول خپل ځان باندې د وجوب حق انکار کول دی.نو معلومه شوه.چه په دې موقع باندې د مدعی علیه سکوت دده د انکار په مرتبه کې دې.



## د دعوې د انکار نه روسته د مدعی علیه غائب کیدلو حکم

وَلَوْ أَنْكَرَ ثُمَّ غَابَ فَكَذٰلِكَ اوکه مدعی علیه انکار اوکړو.او بیا غائب شو.نو بیا هم دغه حکم دې. لِأَنَّ الشَّرْطَ قِيَامُ الْإِنْكَارِ وَقْتَ الْقَضَاءِ ځکه چې د قضاء په وخت انکار موجودکیدل شرط دی. وَفِيهِ خِلَافُ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ[1] او په دې کې د امام ابویوسف ﷫ اختلاف دې.

تشریح:- علامه مرغینانی ﷫ فرمانی.که مدعی علیه د دعوې انکار اوکړو.اود قاضی د فیصلې ور کاوه نه وړاندې غائب شو.نو بیا هم دغه حکم دې.چه قاضی به فیصله نه ورکوی.ګنې دده فیصله به نافذ نه وي.ځکه چې د قضاء په وخت د انکار موجود کیدل شرط دی.حالانکه د مدعی علیه د غائب کیدلو په وجه د قضاء په وخت د مدعی علیه د اړخه انکار نه دې موجود شوې.نوهرکله چې د قضاء شرط نه دې موجود شوې.نو په دې صورت کې به د قاضی قضاء هم جائز نه وي.خو په دې صورت کې د حضرت امام ابویوسف ﷫ اختلاف دې.یعنی ددوی په نیز ذکرشوی صورت کې قاضی فیصله ورکولې شي.ځکه امام ابویوسف ﷫ فرمانی.چه د قاضی د قضاء لپاره د قضاء د وخته پورې انکار باندې اصرار (استقامت) شرط دې.او مدعی علیه چې د انکار کاوه نه روسته کله غائب شو.اود قضاء د وخته پورې حاضر نشو.نود استصحاب په وجه یعنی په تیرشوی حالت باندې د پاتې کیدلو په وجه به هم دا ونیلې شي.چه دې پخپل انکار باندې قائم او مصر دې.نو هرکله چې د قاضی د فیصلې ور کاوه شرط یعنی د قضاء د وخته پورې انکار باندې اصرار اوموندې شو.نود قاضی فیصله ورکول به هم جائز وي.

❓ د امام ابویوسف ﷫ د دلیل ځواب ورکولوکې صاحب د عنایه او علامه بدرالدین عینی (صاحب د بنایه) ﷫ فرمانی.چه د استصحاب دلیل په ذریعه یوڅیز رفع کولې شي.خو ثابتولې نشي.او دلته کې د قضاء دحکم ثابتولو ارتیا دې.د رفع کاوه نه دې.نو دلته کې د استصحاب په ذریعه د قضاء د وخته پورې انکار باندې اصرار نه ثابتیږي.اوهرکله چې د قضاء د وخته پورې انکار باندې اصرار ثابت نشو.نود قاضی د قضاء شرط هم اونه موندې شو.نو په ذکرشوی صورت کې د قاضی فیصله ورکول به هم جائز نه وي.

وَمَنْ يَقُومُ مَقَامَهُ قَدْ يَكُونُ نَائِبًا بِإِنَابَتِهِ اوکوم سړې چې د مدعی علیه قائم مقام وي.دې کله د هغه په نائب کاوه سره نائب کیږي. كَالْوَكِيلِ أَوْ بِإِنَابَةِ الشَّرْعِ لکه د وکیل یا شریعت په نائب کاوه سره، كَالْوَصِيِّ مِنْ جِهَةِ الْقَاضِي لکه وصي د قاضی د طرفه.

تشریح:- ابوالحسین قدوری ﷫ فرمانی.چه قضاء علی الغائب ناجائز ده.خوکه د مدعی علیه غائب ځوک قائم مقام موجود وي.(نوجائز ده) نو په «من یقوم مقامه» سره علامه مرغینانی ﷫ ددې قائم مقام تفصیل ذکر کوی.لکه فرمانی.چه کوم سړې د مدعی علیه قائم مقام وي.دې خو کله حقیقتاً د هغه قائم مقام وي.لکه مثلاً د قاضی د اړخه مقررشوې وصي،

وَقَدْ يَكُونُ حُكْمًا بِأَنْ كَانَ مَا يَدَّعِي عَلَى الْغَائِبِ او کله حکماً نائب کیږي.په دې طریقه د کوم شي په غائب باندې دعوه کوی. سَبَبًا لِمَا يَدَّعِيهِ عَلَى الْحَاضِرِ او هغه د هغه شي سبب وي.د کوم چې په حاضر باندې دعوه کوی. وَهٰذَا فِي غَيْرِ صُورَةٍ فِي الْكُتُبِ اودا په کتابونوکې په ډیرو صورتونوکې ذکر دې.

تشریح:- او کله حکماً د هغه قائم مقام وي.په دې طریقه چې د کوم شي په غائب باندې دعوه کوی.هغه به ددې شي لازمی طور باندې سبب وي.د کوم چې په حاضر باندې دعوه کوی.داسې به نه وي.چه یو وخت سبب وي.او بل وخت سبب نه وي.

[1] لکن الراجح هو قول الطرفین ﷫ کذا فی فتح القدیر(۶\۴۰۲) والدرالمختار(۴\۳۷۳) ومجمع الأنهر(۳\۳۳۹) والبحرالرائق (۶\۱۷) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۱۷)-

علامه مرغيناني ﷫ فرمائي. چه حکما قائم مقام کيدل په کتابونوکي په ډيرو صورتونوکي ذکر دي. مثلاً خالد په حامد باندي دعوه اوکړله. چه دا کور په کوم چي حامد قابض دي. زما ملك دي. ما دا د شاهد نه هغه وخت اخستي وو. کله چي شاهد ددي مالك وو. حالانکه شاهد دي وخت غائب دي. او حامد زما نه دا کور غصب کړي دي. او حامد ددي نه انکار کوی. نو خالد مدعی بينه پيش کړل. نود خالد بينه به قبول وی. اود خالد لپاره چي کوم حکم وی. هغه چي څنګه په حامد (غاصب) باندي نافذ دي. دغه ډول به په شاهد غائب باندي هم نافذ وی. ځکه چي په حامد باندي د دعوي سبب هم دادي. چه ده د شاهد نه اخستي دي. نود شاهد د اړخه حامد يوحکمی قائم مقام شو. نو مدعی عليه (شاهد) اګرچه غائب دي. خو حامد د هغه حکمی نائب حاضر دي.

أَمَّا إِذَا كَانَ شَرْطًا لِحَقِّهِ بهرحال که د مدعی د حق د ثبوت شرط وی. فَلَا مُعْتَبَرَ بِهِ فِي جَعْلِهِ خَصْمًا عَنِ الْغَائِبِ نود غائب د اړخه د حاضر په نائب جوړولوکي به ددي شرط اعتبار نشی کيدلي. وَقَدْ عُرِفَ تَمَامُهُ فِي الْجَامِعِ اودا واړه کلام په جامع صغير کي دي.

تشريح:- اوکه داسي وی. چه په غائب باندي د څه دعوه ده. هغه په حاضر باندي د حق د ثبوت شرط وی. اوسبب نه وی. نود غائب د اړخه حاضر په نائب حکمی مقررکولوکي به ددي شرط اعتبار نه کيږی. يعنی په دي صورت کي به حاضر د غائب نائب او قائم مقام نه شمارلي کيږی. مثلاً يو سړی خپلي ښځي ته اووئيل. که خالد خپلي ښځي ته طلاق ورکړو. نوته به هم طلاق والا ئي. يعنی تاته هم طلاق دي. بيا د قائل ښځي دعوه اوکړله. چه خالد خپلي ښځي ته طلاق ورکړي دي. او په دي باندي ئي بينه پيش کړل. نو ددي دا بينه به نه قبليږی. او قاضی به د طلاق واقع کاوه حکم نه کوی. ځکه چي په غائب يعنی خالد باندي چي دا دعوه ده. چه ده خپلي ښځي ته طلاق ورکړي دي. دا به حاضر يعنی د قائل په ښځه باندي د حق د ثبوت د طلاق واقع کولوشرط دي. او وړاندي تيرشوی دی. چه د غائب د اړخه حاضر په نائب حکمی جوړولوکي د شرط اعتبار نه کيږی. په دي وجه به په دي مسئله کي هم د شرط اعتبار نه کيږی.

## د يتيمانو اموال په پور باندي د ورکولو حکم

قَالَ وَيُقْرِضُ الْقَاضِي أَمْوَالَ الْيَتَامَى فرمائي. او قاضی به د يتيمانو مالونه پور ورکوی. وَيَكْتُبُ ذِكْرَ الْحَقِّ لِأَنَّ فِي الْإِقْرَاضِ مَصْلَحَتَهُمْ او ددي حق تحرير به ليکی. ځکه چي په قرضه ورکولوکي ددوی مصلحت دي. لِبَقَاءِ الْأَمْوَالِ مَحْفُوظَةً مَضْمُونَةً ځکه چي ددوی مال به په ساتنه سره د قرضدارو په ذمه مضمون پاتي وی.

حل اللغة: ① يقرض- پور به ورکوی- ② اليتامی- جمع د يتيم- ③ الاقراض- پور ورکول- ④ مضمونة- تاوان شوي

تشريح:- امام محمد ﷫ په جامع صغير کي فرمائيلی دی. چه قاضی ته د يتيمانو مال د پور په طور ور کاوه اجازت دي. تاج الشريعة فرمائي. چه قاضی ثقه (با اعتماده) خلګو ته (چي ددوی حُسن معامله مشهوره وی) د يتيم مال پور ورکولي شی. علامه بدرالدين عينی ﷫ فرمائي. که په مال باندي د يتيم قبضه وی. نو قاضی ته د پور ور کاوه اجازت نشته. بهرحال که قاضی د يتيم مال چاته پور ورکړی. نو ددي تحرير (لوظ نامه) به خامخا ليکی. چه د فلانی يتيم دومره قدري مال فلانی سړی ته پور ورکړي شوي دي. قاضی ته د يتيم مال پور ور کاوه اجازت ځکه ورکړي شوي دي. چه په قرضه ور کاوه کي د يتيمانو ماشومانو فائده ده. او فائده ځکه ده. چه قاضی د زياتي مشغولتيا په وجه پخپله د ساتنه کاوه نه عاجز دي. اوس به دامال قاضی يا چا سره امانت ايږدی. يا به ئي چاته پور ورکوی. په ړومبی صورت کي د يتيم مال ضائع کيدلو امکان دي. په دي طريقه چي د يتيم مال مودع (امين) سره تعدی نه بغير ضائع شو. نو په امين به ضمان واجب نه وی. او په دوهم صورت کي د مال پوره پوره ساتنه دي. که د يتيم مال قرضدار سره هلاك هم شی. بيا به هم قرضدار باندي ضمان واجب وی.

وَالْقَاضِي يَقْدِرُ عَلَى الْاسْتِخْرَاجِ او قاضی (ددي) په وصولولو باندي قادر هم دي. وَالْكِتَابَةَ لِيَحْفَظَهُ او تحرير دده د ياد ساتلو لپاره دي.



حل اللغة: يقدر- قدرت لری- الاستخراج- پور وصولول- الكتابة- ليکل- ليحفظ- چه حفاظت اوکړی

تشريح:- داعبارت په اصل کي د يو اعتراض خواب دي هغه دا چي د پور ور کاوه په صورت کي هم د يتيم مال ضائع کيدلو امکان دي. په دي طريقه چي قرضه اخستونکي يعنی قرضدار د پور نه انکار اوکړی؟ نو ددي خواب دادي. چه قاضی ته چونکه قرضه ورکول معلوم دی. په دي وجه دي د خپلي عهدي اومنصب په توان سره په پور وصولولو باندي قادر دي. او هرکله چي په پور وصولولو باندي قادر دي. نود يتيم د مال ضائع کيدلو هيڅ امکان باتي نشو. اوهرکله چي د پور ور کاوه په صورت کي د يتيم مال د ضائع کيدلو نه محفوظ کيږی. نوددي مصلحت په خاطر د يتيمانو ماشومانو مالونه د پور په طور ورکولوکي هيڅ باك نشته. اود پور ور کاوه تحرير ليکل صرف د قاضی د يادداشت لپاره دی.

وَإِنْ أَقْرَضَ الْوَصِيُّ ضَمِنَ اوکه وصی د يتيم مال پور ورکړو. نو هغه ضامن دي. لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْاسْتِخْرَاجِ ځکه چي وصی په وصولولو باندي قادر نه دي.

تشريح:- ماتن ﷫ فرمائي. چه د يتيمانو ماشومانو مالونه د پور په طور ورکول وصی لپاره جائز نه دی. نوکه وصی د يتيم مال د پور په طور چاته ورکړو. نودي به ضامن وی. يعنی که قرضدار قرضه واپس کړله. نو ،،الحمدلله،، ګني وصی لپاره به تاوان ورکول ضروری وی. ځکه چي په پور ورکولوکي اګرچه مال محفوظ کيږی. او په قرضدار باندي ضمان واجبيږی. خوکه قرضدار د پور انکار اوکړی. نود وصی سره هيڅ داسي توان موجود نشته. چه په هغې سره دي خپله قرضه وصول کړی. نو ددي عدم توان په وجه وصی ته د يتيم مال په پور ور کاوه اختيار نه دي ورکړي شوي.

وَالْأَبُ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيِّ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ او پلار په دوي (دوه) روايتونوکي په اصح روايت کي د وصی په مرتبه کي دي. لِعَجْزِهِ عَنِ الْاسْتِخْرَاجِ ځکه چي پلارهم د وصولولو نه عاجز دي.

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي. چه د صحيح روايت مطابق پلار د وصی په مرتبه کي دي. مثلاً صغير بچی د خپلي مور وغيره ترکه په ميراث کي حاصله کړله. نو ده پلار ته دا اختيار نشته. چه دي دا مال پور ورکړی. خوکه پلار د خپل صغير بچی دا مال چاته پور ورکړو. نود اصح روايت مطابق، پلار به ددي مال ضامن وی. يعنی که قرضدار اداکړو. نو فبها (ډيره ښه ده) ګني پلار به ضامن وی. او دليل ددي دادي. که قرضدار د پور انکار اوکړو. نود وصی پشان پلار هم ددي د وصولولو نه عاجز دي.

## بَابُ التَّحْكِيمِ

ژباړه:- (دا) باب د فيصل (يعنی د حَکم او ثالث مقررولو په بيان کي) دي.

تشريح:- وجه تاخير هذا الباب ⊛ تحکيم د قضاء په انواعو کي يو نوع ده. خود تحکيم ذکر د قضاء نه په دي وجه موخر کړي شوي دي. چه ،،محکم،، د قاضی په نسبت د کمي مرتبي وی. په دي وجه د محکم فيصله صرف په هغه کس نافذ کيږی. خوك چي دده په فيصله باندي راضی شوي دي. اود قاضی فيصله په هرکس نافذ کيږی. که دي د قاضی په فيصله باندي راضی وی. اوکه راضی نه وی. او قاضی ته عام ولايت حاصل وی. او محکم ته عام ولايت حاصل نه وی. اود محکم حکم په حدود او قصاص کي نه جائز کيږی. اود قاضی حکم په حدود او قصاص کي هم جائز کيږی. بهرحال د قاضی په مقابله کي محکم د کم مرتبي دي. اودا ښکاره ده. چه د اعلی ذکر وړاندي کيږی. اود ادنی ذکر روسته کيږی. په دي وجه د باب التحکيم ذکر د قضاء نه روسته اوکړي شو.

معنی التحکيم ⊛ تحکيم د باب تفعيل مصدر دي. ددي معنی ده، حَکم مقررول، ثالث مقررول. ،،حَکَمه،، هغه وخت ونيلي شی. کله چي دواړه فريق د خپلي جګړي فيصله يو دريم کس ته اوسپاری. دي دريم کس ته حَکم او مُحَکَم او فيصل ونيلي شی.

ثبوته من ادلة الشرع ۞ د تحکیم جواز د کتاب الله، نه ثابت دي. الله تعالی فرمائیلي دي ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا إِن يُرِيدَا إِصْلَاحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا﴾ اوکه تاسو یریږئ چې دوی دواړه پخپل منځ کښې ضد ساتي. نو یو حکَم د میړه په قرابت دارو کې مقرر کړه. او یو حکَم د ښځې د قرابت دارو نه اولیګه. دا آیت اګرچه د زوجینو په منځ کې د حکَم جوړولو په جواز باندې دلالت کوي. خو کله چې د زوجینو په منځ کې حکم جوړول جائز دي. نو په پاته نورو معاملاتو به هم حکم جوړول جائز وي. ② اود سنت نه هم ثابت دي په حدیث کې دي. ابو شریح وائي. اې د الله رسوله ﷺ! زما د قوم خلګ چې کله په یو کار کې اختلاف کوي. نو ماله راځي. نو زه د دوی په منځ کې فیصله کوم. نو دواړه فریق زمانه راضي کیږي. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل. چه ډیره ښه خبره ده. (نسائي) ③ اود اجماع نه هم ثابت دي. واړه صحابه د تحکیم په جواز باندې متفق وو. نقل دي. چه د حضرت عمر او حضرت ابی بن کعب ﷺ په منځ کې په یوه مسئله کې جګړه وه. نو دواړه بزرګانو زید بن ثابت ﷺ حکم مقرر کړې وو. (فتح القدير)

## پخپله ثالث مقررول او دده په فیصله باندې د متفق کیدلو حکم

وَإِذَا حَكَّمَ رَجُلَانِ رَجُلًا او کله چې دوې (دوه) سړو یو سړې حکم جوړ کړو. فَحَكَمَ بَيْنَهُمَا وَرَضِيَا بِحُكْمِهِ جَازَ او دده د دواړو په منځ کې فیصله ورکړه. او دواړه دده په حکم کیدلو باندې راضي شو. نو جائز دي. لِأَنَّ لَهُمَا وِلَايَةً عَلَى أَنْفُسِهِمَا ځکه چې دواړو ته پخپل ذات باندې ولایت حاصل دي. فَصَحَّ تَحْكِيمُهُمَا نو ددې دواړو حکم جوړول هم جائز دي. وَيَنْفُذُ حُكْمُهُ عَلَيْهِمَا اود حکم حُکم به په دواړو باندې نافذ وي.

**حل اللغة:** رضیا-دواړه راضي وي-تحکیم-حاکم جوړول-ینفذ-نافذوي-حکم-فیصله اوکړه

**تشریح:-** ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي. که دوې (دوه) سړو په یوه نزاعي مسئله کې څوک دریم سړې حکَم (ثالث) مقرر کړو. او دده په فیصله باندې راضي شو. نو دا جائز دي. ځکه چې د دواړو په ذات باندې ولایت حاصل دې. نو ددې دواړو پخپله مسئله کې څوک دریم سړې حکم جوړول صحیح دي. او هر کله چې حکم جوړول جائز دي. نو د حکم فیصله به هم په دې دواړو باندې نافذ وي. البته ددې دواړو نه په علاوه باندې به نافذ نه وي. لکه مثلاً که د مشتري او بائع په منځ کې د اختلاف په وجه دواړو یو دریم سړې حکم مقرر کړو. بیا د حکم د فیصلې مطابق مشتري خپل بائع ته مبیع واپس کړو. نو بائع لپاره به خپل بائع اول ته واپس کول جائز نه وي. ځکه چې بائع ثاني او مشتري چاچه حکم مقرر کړي دي. په دوی به د حکم فیصله نافذ وي. خو په بائع اول کوم چې ددې دواړو نه غیر (علاوه) دي. په هغه به دده فیصله نافذ نه وي.

وَهَذَا إِذَا كَانَ الْمُحَكَّمُ بِصِفَةِ الْحَاكِمِ اودا حکم هغه وخت دي. کله چې محکم د حاکم صفت سره وي. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْقَاضِي فِيمَا بَيْنَهُمَا په دې وجه د قضاء اهلیت شرط دي. فَيُشْتَرَطُ أَهْلِيَّةُ الْقَضَاءِ په دې وجه د قضاء اهلیت شرط دي.

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. چه حکم هغه سړې کیداې شي. په چاکې چې د حاکم او قاضي جوړیدلو صلاحیت وي. یعنی لکه څنګه چې قاضي لپاره د شهادت اهل کیدل شرط دي. دغه ډول د حکم لپاره هم د شهادت اهل کیدل ضروري دي. ځکه چې حکم ددې دواړو سړو په منځ کې چاچه حکم مقرر کړې دې. په منزله د قاضي دې. اود قاضي لپاره چونکه د شهادت او قضاء اهل کیدل ضروري دي. په دې وجه حکم چې د قاضي په مرتبه کې دې. د هغه لپاره به د شهادت او قضاء اهل کیدل شرط وي. نو که دوې (دوه) سړو یوه ښځه په داسې مسئله کې حکم مقرر کړله. کوم چې په شهادت سره هم ثابتیږي. نو دا جائز دي. ځکه چې په داسې مسئله کې ښځه د شهادت اهل ده.

وَلَا يَجُوزُ تَحْكِيمُ الْكَافِرِ وَالْعَبْدِ وَالذِّمِّيِّ وَالْمَحْدُودِ فِي الْقَذْفِ وَالْفَاسِقِ وَالصَّبِيِّ اود کافر، غلام، ذمي، محدود في القذف، فاسق اود نابالغ حکم جوړول جائز نه دي. لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الْقَضَاءِ اعْتِبَارًا بِأَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ ځکه چې د شهادت په اهلیت باندې قیاس کاوه سره اهلیت د قضاء معدوم دي.

**حل اللغة:** ① تحکیم-حاکم جوړول-② العبد-غلام-③ الانعدام-نشتوالې-④ اعتبارا-د اهله د قیاس نه



**تشریح:-** کافر، غلام، ذمي، محدود في القذف، فاسق او نابالغ حکم مقررول جائز نه دي. ځکه چې په ذکرشوو کسانو کې چونکه د شهادت لیاقت موجود نه دې. په دې وجه ذکر شوي نفر قاضي نشي جوړیدلې. او هر کله چې قاضي نشي کیدلې. نو حکم هم نشي کیدلې. خو ذمي حکم مقررول هغه وخت ناجائز دي. کله چې دې مسلمان حکم مقرر کړې وي. او که ذمیانو څوک ذمي حکم مقرر کړو. نو دا جائز دي. ځکه چې ذمي د مسلمانانو په حق کې اګرچه اهل شهادت نه دې. خو د اهل ذمه په حق کې د شهادت اهل کیداې شي.

وَالْفَاسِقُ إِذَا حُكِّمَ يَجِبُ أَنْ يَجُوزَ عِنْدَنَا او کله چې فاسق حکم جوړ کړې شي. نو زموږ په نیز جائز کیدل پکار دي. كَمَا مَرَّ فِي الْمُوَلَّى لکه څنګه چې د قاضي په مسئله کې تیر شو.

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. که فاسق حکم مقرر کړې شو. نو زموږ په نیز جائز کیدل پکار دي. لکه څنګه چې د،، کتاب ادب القاضي، په پیل کې تیر شو. چه فاسق به قاضي نشي جوړیدلې. خو که جوړ کړې شو نو جائز دې. او دده حُکم قضاء به نافذ وي. هم دغه ډول که فاسق حکم مقرر کړې شو. نو هم جائز کیدل پکار دي.

## د ثالث نه د جوړونکو د رجوع حکم

وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُحَكِّمَيْنِ أَنْ يَرْجِعَ او په حکَم جوړونکي دواړه سړو کې هر یو ته د حکَم جوړولو نه د رجوع اختیار دي. مَا لَمْ يَحْكُمْ عَلَيْهِمَا ترکومه پورې چې حکم په دوی باندې حُکم نه وي صادر کړې.

**تشریح:-** ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي. چه د حکم جوړونکو دواړه کسانو کې هر یو ته د حکم د حُکم کاوه نه مخکې مخکې د حکم جوړولو نه د رجوع اختیار دې. یعنی د حکم د حُکم کاوه نه مخکې مخکې دواړو کې هر یو دا وئیلې شي. چه اوس تاسو زما حکم نه یئ. هم دا دامام شافعي ﷫ قول دې. اود امام مالک ﷫ یو روایت هم دا دې. اود امام احمد ﷫ نه هم یو روایت دادې.

لِأَنَّهُ مُقَلَّدٌ مِنْ جِهَتِهِمَا فَلَا يَحْكُمُ إِلَّا بِرِضَاهُمَا جَمِيعًا دلیل دا دې چې دې ددې دواړو د اړخه حکم مقرر کړې شوې دې. نو هغه به ددې دواړو د رضامندئ نه بغیر حکم نه نافذ کوي.

**تشریح:-** دلیل دادې. چه حکم هم ددې دواړو په اتفاق سره مقرر کړې شو. نو ترکومه پورې چې دوی دواړه دده په حکم کیدلو باندې راضي وي. هغه وخت پورې به ده ته د حکم او فیصله کاوه اجازت وي. او کله چې په دواړو کې یو کس د ناراضګئ اظهار اوکړو. نو ده ته به د حکم کاوه اجازت نه وي. ځکه چې د چا وجود دوې (دوه) څیزونو سره متعلق وي. د هغه د موجود کیدلو لپاره د دواړه څیزونو موجود کیدل ضروري دي. خو ددې د معدوم کیدلو لپاره د دواړه څیزونو معدوم کیدل ضروري نه وي. بلکه که په دواړه څیزونو کې یو شئ هم معدوم شو. نو هغه شئ به معدوم وي. نو هم په دې وجه وئیلې شوي دي. چه د حکم حُکم پاته ساتلو لپاره د دواړه سړو راضي پاتې کیدل ضروري دي. او دده حکم کیدل ختمولو لپاره د یو ناراض کیدل هم کافي دي.

وَإِذَا حَكَمَ لَزِمَهُمَا لِصُدُورِ حُكْمِهِ عَنْ وِلَايَةٍ عَلَيْهِمَا او کله چې حکم حُکم ورکړو. نو په دې دواړو به لازم وي. ځکه چې په دې دواړو باندې ولایت حاصلیدلو سره حُکم صادر شوې دې.

**تشریح:-** ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي. که حکم کوم حکم صادر کړو. نود حکم دا حکم به لازم وي. او په فریقینو کې به هیڅ یو ته د انحراف حق نه وي. لکه که قاضي یوه فیصله ورکړله. بیا سلطان دې معزول کړو. نود قاضي دا فیصله نافذ او لازم وي. هم دا یو قول د امام شافعي ﷫ دې. اود امام مالک او امام احمد ﷫ مذهب هم دا دې. ځکه چې حکم کوم وخت حُکم ورکړې دې. دغه وخت ده ته په دواړو باندې ولایت حاصل وو. اود صاحب ولایت حکم لازم وي. په دې وجه د حکم ذکرشوې حُکم به هم لازم وي.

وَإِذَا رُفِعَ حُكْمُهُ إِلَى الْقَاضِي فَوَافَقَ مَذْهَبَهُ أَمْضَاهُ اود حکم د حُکم مرافعه قاضي ته اوکړې شوه. اودا حُکم دده د مذهب موافق وو. نو قاضي به دا نافذ کوي. لِأَنَّهُ لَا فَائِدَةَ فِي نَقْضِهِ ثُمَّ فِي إِبْرَامِهِ عَلَى ذَلِكَ الْوَجْهِ ځکه چې د هغه حکم ماتول، او

بیا هم دغه ډول مضبوطولو کي هیڅ فائده نشته.

حل اللغة: رفع-یوړې شی-امضا-نافذ کړی-نقض-ماتول-ابرام-مضبوطول

تشریح:- ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي. که د حَکم د حُکم قاضي ته مرافعه اوکړې شوه. اودا حُکم د قاضي د مذهب موافق وی. نو قاضي به دحَکم حُکم نافذوی. ځکه چې د حَکم حُکم ماتول او بیاهم دغه ډول ددې په مضبوطولو کي هیڅ فائده نشته. یعنی په دې کي څه فائده نشته. چه قاضي مخکي د حَکم حُکم مات کړی. او بیا د خپل اړخه هم دغه حُکم صادر کړی. اود قاضي په عدالت کي مرافعه کاوه سره به دا فائده وی. چه هر کله قاضي د حَکم حکم نافذ کړو. بیا د یو داسې قاضي په عدالت کي مرافعه اوشوه. دچا د مذهب چې دا حکم موافق نه دې. نودې دوهم قاضي ته به ددې د ماتولو اجازت نه وی. ځکه وړاندې تیر شوی دی. که یوه مجتهدفیه مسئله یو قاضي نافذ کړله. نو دوهم قاضي (چاته چې مرافعه شوې ده) ته به ددې دماتولو اجازت نه وی.

وَإِنْ خَالَفَهُ أَبْطَلَهُ اوکه د حَکم حُکم د قاضي دمذهب خلاف وو. نو دا به باطلوی. لِأَنَّ حُكْمَهُ لَا يَلْزَمُهُ ځکه چې د حَکم حُکم په قاضي باندې لازم نه دې. لِعَدَمِ التَّحْكِيمِ مِنْهُ ځکه چې د قاضي د اړخه دې حَکم نه دې جوړ شوی.

تشریح:- اوکه د حکم حُکم ددې قاضي د مذهب مخالف وی. د چا په عدالت کي چې مرافعه شوې ده. نو قاضي به د حَکم حُکم باطل کړی. ځکه چې د حَکم حُکم په قاضي باندې لازم نه دې. او په قاضي باندې د حَکم حُکم لازمول ځکه نه دې. چه د قاضي د اړخه دده د حَکم جوړول نه دی موجود شوی. اودا خبره وړاندې تیره شوې ده. چه د حَکم حُکم په هغه چا لازمیږی. چاچه دې حکم جوړ کړې وی. دده نه په علاوه باندې نه نافذ کیږی. په دې وجه د حکم داحُکم به په قاضي باندې لازم نه وی.

## په حدود او قصاص کښې د ثالث جوړولو حکم

وَلَا يَجُوزُ التَّحْكِيمُ فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ اوپه حدود او قصاص کي حکم جوړول جائز نه دی. لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُمَا عَلَى دَمِهِمَا ځکه چې ددې دواړو ولایت پخپله وینه باندې نشته. وَلِهَذَا لَا يَمْلِكَانِ الْإِبَاحَةَ فَلَا يُسْتَبَاحُ بِرِضَاهُمَا په دې وجه چې دواړه د وینې مباح کاوه مالکان نه دی. نو ددوی په رضامندئ سره به هم وینه نه مباح کیږی.

حل اللغة: ① تحکیم-حاکم جوړول-دم -وینه-الاباحة-مباح کول-یستباح-مباح ګرځولې شي

تشریح:- ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي. چه په حدود اوقصاص کي حَکم جوړول جائز نه دی. زموږ په احناف عالمانو کي دا مذهب د امام خصاف ﷫ دې. شیخ ابوالحسن قدوري او علامه مرغیناني ﷫ هم دا اختیار کړې دې. خو دلته کي د حدودو نه هغه حدود مراد دی. کوم چې خالص د الله ﷻ حق دی. لکه حدزنا او حد شرب خمر، دلیل دادې. چه حکم مقررونکو ته پخپل ځان او وینه باندې هیڅ ولایت حاصل نه دې. هم دا وجه ده. چه چاته د خپلې وینې مباح کاوه اختیار نه دې ورکړې شوې. نو هر کله چې چاته پخپل ځان او وینې باندې ولایت حاصل نه دې. اود خپلې وینې مباح کاوه اختیار نه دې ورکړې شوې. نو دده په رضامندئ سره به دده وینه نه مباح کیږی. او هر کله چې د رضامندئ باوجود خپله وینه مباح نشوه. نود قصاص (وینه تویولو) لپاره به څوک حکم مقررول هم جائز او مباح نه وی. صاحب د عنایه ﷫ فرمائي. چه د علامه مرغیناني ﷫ بیان شوې دا دلیل په قصاص کیدې. په دې وجه بعض عالمانو په دلیل پیش کاوه کي فرمائیلي دی. چه د حَکم حُکم چونکه د حَکم مقررولو نه د سره نشي وصولولې. په دې وجه به د حَکم په حکم کي شبه وی. اوچونکه حدود او قصاص په شبهاتو سره نشي وصولولې. په دې وجه د حُکم په حُکم سره به حدود او قصاص نشي وصولولې. او هر کله چې د حکم په حکم کي د حکم مقررولو په عدم جواز باندې کیدای شي. خو په حدودو کي د حکم مقررولو په عدم جواز باندې نشي علاوه په حق کي حجت نشي کیدې. نو په حدود او قصاص کي حَکم مقررول به هم جائز نه وی.

قَالُوا: وَتَخْصِيصُ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ يَدُلُّ عَلَى جَوَازِ التَّحْكِيمِ فِي سَائِرِ الْمُجْتَهَدَاتِ كَالطَّلَاقِ وَالنِّكَاحِ وَغَيْرِهِمَا مشائخ فرمائي. چه د حدود او قصاص تخصیص کول، په ټولو مجاهداتو، طلاق، نکاح وغیره کي د حکم جوړولو په جواز باندې دلالت کوی. وَهُوَ صَحِيحٌ إِلَّا أَنَّهُ لَا يُفْتَى بِهِ اوهم دا صحیح ده. خو دا چې په دې به فتوی نشي ورکولې. وَيُقَالُ يُحْتَاجُ إِلَى حُكْمِ الْمَوْلَى دَفْعًا لِتَجَاسُرِ الْعَوَامِّ او ونیلې به شي چه په دې کي د قاضي د حکم اړتیا دې. چه په دې کي عوام زړه ورتیا اونکړی.



حل اللغة: ① تخصیص-خاص کول-② یفتی-فتوی ور کولای شي -③ یحتاج-حاجت وی-④ تجاسر-زړه ورتیا

تشریح:- علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. چه متاخرین مشائخو فرمائیلي دی. چه د شیخ ابوالحسن قدوري ﷫ د حدود او قصاص تخصیص کول ددې خبرې دلیل دې. چه د حدود او قصاص نه علاوه په نورو ټولو مسئلو (طلاق، نکاح وغیره) کي حکم مقررول جائز دی. اوهم دا صحیح ده. خو ددې فتوی به نشي ورکولې. بلکه دا به ونیلی شي چه په دې کي د قاضي د حکم اړتیا دې. ځکه که د حَکم جوړولو په جواز باندې فتوی ورکړې شوه. نو عوام به زړه ور او بهادر شي. او هر سړې به د خپلې منشاء (او خوښې) مطابق حکم مقرروی. اود فیصلې حاصلولو کوښش به کوی. مثلاً یو کس په یوځل درې طلاقه ورکړل. تردې چې دا ښځه زموږ په نیز د حلاله نه بغیر جائز پاتې نشوه. خو که دوی ته د حکم مقررولو د جائز کیدلو فتوی معلوم وی. نو ښځه اوسړې به ملاؤ شي. او یو شافعي مذهب یا غیرمقلد به په دې معامله کي حَکم مقرر کړی. او دوی به د یو طلاق واقع کاوه حکم ورکوی. دغه ډول کوم سړې ته چې په کومه مسئله کي اړتیا راپیښ شي. هغه به داسې سړې لټون کوی. دچا په نیز چې دا خبره جائز وی. نودې به حکم جوړوی. اود جواز حُکم به حاصلوی. اګرچه ددې نه وړاندې دا حرام ګڼړی. په دې وجه مشائخ وائي. چه حکم جوړول اګرچه جائز دی. خو ددې فتوی به نشي ورکولې.

وَإِنْ حَكَّمَاهُ فِي دَمٍ خَطَإٍ فَقَضَى بِالدِّيَةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ لَمْ يَنْفُذْ حُكْمُهُ اوکه دوې (دوه) سړو په قتل خطا کي دې حکم جوړ کړو. نوده په عاقله باندې د دیت فیصله ورکړله. نو دده فیصله به نه نافذ کیږی. لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِمْ ځکه چې په عاقله باندې دده ولایت نشته. إِذْ لَا تَحْكِيمَ مِنْ جِهَتِهِمْ ځکه چې ددوی د اړخه حکم جوړول نه دی موجود شوی.

تشریح:- علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. که دوې (دوه) سړو په قتل خطاء کي څوک حکم مقرر کړو. او حکم په عاقله (مددګار خاندان) باندې د دیت حکم ورکړو. نود حَکم داحکم به نافذ نه وی. ځکه چې عاقله دې د خپل اړخه حَکم نه دې مقرر کړې. په دې وجه به عاقله باندې حکم ته هیڅ ولایت هم حاصل نه وی. او هر کله چې عاقله باندې حکم ته څه ولایت حاصل نه دې. نو په عاقله باندې به د حَکم حُکم هم نافذ او لازم نه وی.

وَلَوْ حَكَمَ عَلَى الْقَاتِلِ بِالدِّيَةِ فِي مَالِهِ رَدَّهُ الْقَاضِي اوکه حَکم په قاتل باندې دده په ذاتی مال کي د دیت حکم ورکړو. نو قاضي به دا ردکوی. وَيَقْضِي بِالدِّيَةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ او په عاقله باندې به ددیت حُکم ورکوی. لِأَنَّهُ مُخَالِفٌ لِرَأْيِهِ وَمُخَالِفٌ لِلنَّصِّ أَيْضًا ځکه چې دا د قاضي د رائې خلاف دې. اود نص خلاف هم دې. إِلَّا إِذَا ثَبَتَ الْقَتْلُ بِإِقْرَارِهِ خو کله چې د قاتل په اقرار سره قتل ثابت شوې وی. لِأَنَّ الْعَاقِلَةَ لَا تَعْقِلُهُ ځکه چې عاقله به دا دیت نه برداشت کوی.

حل اللغة: ① الدیة-خون بها-② العاقلة-خاندان-③ رد-واپس کیدل-④ تعقل-برداشت

تشریح:- اوکه حَکم صرف په قاتل باندې دده د ذاتی مال نه د دیت ور کاوه حکم ورکړو. نو قاضي به دا حکم ردکوی. او په عاقله باندې به د دیت ور کاوه حکم ورکوی. ځکه چې د حَکم حُکم د قاضي د مذهب هم خلاف دې. اود نص حدیث هم خلاف دې. حدیث دادې. حضرت مغیره بن شعبه ﷛ فرمائي. چه دوې (دوه) ښځې خپل منځ کي ښې وی. یوې په بلې باندې په کاڼړی یا د خیمې په میخ باندې ګزار اوکړو. چه په دې سره ددې دخیټې بچې ساقط شو (اوغورزیدو). په دې باندې رسول الله ﷺ د خیټې د بچي متعلق غره یعني یو غلام یا وینځه د دیت په طور د ور کاوه فیصله اوکړله. اودا نې د ښځې (قاتلې) د عصبه (عاقله) په ذمه مقرر کړو.

① په اصل کي دا واقعه د حمل ابن مالك د دوو ښځو ده. نو رسول الله ﷺ د بچي مړکونکي اولیاء ته اوفرمائیل. «قوموا فدوه» پاځئ او دده خون بها یعني دیت اداکړئ. ددې دواړه حدیثونو الفاظو نه معلومیږی. چه دیت په عاقله باندې واجبیږی. د قاتل په ذاتی مال کي نه واجبیږی. خو که قتل د قاتل په اقرار سره ثابت شو. نو په داسې صورت

کي د قاتل په ذاتي مال کي د ديت حکم کول جائز دی.ځکه چې په دې صورت کي عاقله باندې ديت نه واجبيږي.بلکه په قاتل باندې واجبيږي.

## نالث لپاره د بينه په سماعت يا په انکار د قسم باندې د فيصلې حکم

وَيَجُوزُ أَنْ يَسْمَعَ الْبَيِّنَةَ وَيَقْضِيَ بِالنُّكُولِ اود حکم لپاره جائز دی.چه دې د بينه سماعت اوکړي.اود قسم په انکار باندې حکم ورکړي. وَكَذَا بِالْإِقْرَارِ اوهم دغه ډول په اقرار باندې حکم ورکړي. لِأَنَّهُ حُكْمٌ مُوَافِقٌ لِلشَّرْعِ ځکه چې د شريعت موافق ني حکم کړې دې.

حل اللغة: يسمع-واوري-البينة-ګواهان-النکول-انکار-الشرع-شريعت

تشريح:- ابوالحسين قدوري ﷫ فرمائي.کله چې دوې (دوه) کسانو څوک خپل حکم مقرر کړو.نود حکم لپاره دا خبره جائز ده.که مدعی بينه پيش کړي.نو دده د بينه سماعت اوکړي.او مدعی سره د بينه نه کيدلو په صورت کي مدعی عليه نه قسم واخلي.اوچه مدعی عليه د قسم نه انکار اوکړي.نو حکم د مدعی په حق کي فيصله ورکړي.دغه ډول که مدعی عليه د مدعی په حق کي اقرار اوکړو.نو په دې اقرار سره به هم حکم فيصله ورکوی.
دليل دادې.چه د بينه سماعت، د مدعی عليه د قسم په انکار باندې فيصله ورکول، او په اقرار باندې حکم ورکول، درې واړه خبرې د شريعت موافق دی.او حکم ته د شريعت موافق د هرکار اجازت وی.نو ددې خبرو پوره کاوه اجازت به هم وی.

وَلَوْ أَخْبَرَ بِإِقْرَارِ أَحَدِ الْخَصْمَيْنِ اوکه حکم د احدالخصمين د اقرار خبر ورکړو. أَوْ بِعَدَالَةِ الشُّهُودِ وَهُمَا عَلَى تَحْكِيمِهِمَا يُقْبَلُ قَوْلُهُ يا ني د ګواهانو خبر ورکړو.په داسې حال کي چې دواړه دده په حکم جوړولو باندې قائم دی.نود حکم قول به قبلولی شی. لِأَنَّ الْوِلَايَةَ قَائِمَةٌ ځکه چې ولايت قائم دې. وَلَوْ أَخْبَرَ بِالْحُكْمِ لَا يُقْبَلُ قَوْلُهُ اوکه حکم د حکم خبر ورکړو.نو دده قول به نه قبليږي. لِانْقِضَاءِ الْوِلَايَةِ كَقَوْلِ الْمُوَلَّى بَعْدَ الْعَزْلِ ځکه چې دده ولايت ختم شو.لکه د معزول کيدلو نه روسته چې د قاضی قول نه قبليږي.

حل اللغة: اخبر-خبر ورکړو-الخصمين-تثنيه د خصم-الانقضاء-ختميدل-تحکيم-حاکم جوړول

تشريح:- اوکه حکم په مدعی يا مدعی عليه کي يوکس ته اووئيل.تا زما په وړاندې د خپل انډيوالان د حق اقرار کړې دی.اود هغه اقرار په بنا (بنياد) مې فيصله ورکړله.يا ستا په خلاف زما په وړاندې بينه پيش کړې شو.اود دغه ګواهانو تعديل هم اوکړې شو.نود بينه په وجه ما ستا په خلاف حکم ورکړو.نود حکم دا قول به قبول وی.په دې شرط چې دواړه سړی دده په حکم جوړولو باندې قائم وی.ځکه چې د حکم کيدلو په وجه د حکم ولايت پاته دی.نود کوم په خلاف چې حکم فيصله ورکړې ده.که ده د حکم په وړاندې د اقرار کاوه نه انکار اوکړو.يا د خپل ځان په خلاف بينه قائمولو نه انکار اوکړی.نو ددې مقضی عليه قول اړخ ته به توجه نشی کولې.بلکه قاضی به د حکم قول قبلوی.او دده فيصله به نافذ کوی.ځکه چې حکم کوم وخت پورې حکم دی.د قاضی پشان دحکم کاوه اجازت دې.اوکه حکم دا خبر ورکړو.چه ما ستا په خلاف فيصله کړې ده.نو دده دا قول (چې ما فيصله کړې ده) به قبول نه وی.ځکه چې حکم کله فيصله اوکړله.نو دې معزول شو.اوکله چې معزول شو.نو دده ولايت هم منقطع شو.نو دده قول «إني حكمت بكذا» ،،ما د دې حکم کړې دې،، به هم قبول نه وی.لکه څنګه چې د معزول کيدلو نه روسته د قاضی قول «إني حكمت» ،، ماحکم کړې دې،، نه قبليږي.

وَحُكْمُ الْحَاكِمِ لِأَبَوَيْهِ وَزَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ بَاطِلٌ اود حاکم حکم د خپل مورپلار، ښځې،او اولاد لپاره باطل دې. وَالْمُوَلَّى وَالْمُحَكَّمُ فِيهِ سَوَاءٌ والمولى والمحكم فيه سواء او په دې کي قاضی او حکم دواړه برابر دی.

حل اللغة: ① حکم-فيصله-② الابوي-مورپلار-③ زوجة-بی بی -سواء-برابر

تشريح:- ابو الحسين قدوري ﷫ فرمائي.چه حاکم قاضی وی.اوکه حکم وی.که ده د خپل مورپلار يا اولاد يا د



ښځې موافق څه حکم ورکړو.نودا حکم به معتبر نه وی.بلکه باطل به وی.

وَهَذَا لِأَنَّهُ لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ لِهَؤُلَاءِ لِمَكَانِ التُّهْمَةِ اودا ځکه چې ددې خلګو لپاره د حاکم ګواهی د تهمت په وجه قبول نه ده. فَكَذَلِكَ لَا يَصِحُّ الْقَضَاءُ لَهُمْ يا دغه ډول ددې خلګو لپاره د قضاء حکم هم نه صحيح کيږي.

تشريح:- دليل دادې.چه د قضاء لپاره اهل شهادت شرط دې.يعنی کوم کس چې د شهادت اهل وی.هم هغه به د قاضی او حکم جوړيدلو اهل وی.اود تهمت د خطرې په وجه د چا شهادت چې دده د مورپلار، اولاد اود ښځې په حق کي نه قبليږي.په دې وجه به ددوی په حق کي دده حکم او فيصله هم نه قبليږي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا حَكَمَ عَلَيْهِمْ په خلاف ددې کله چې ددوی په خلاف حکم ورکړي. لِأَنَّهُ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِمْ لِانْتِفَاءِ التُّهْمَةِ ځکه چې ددې خلګو په خلاف دده ګواهی د تهمت منتفی کيدلو په وجه قبلولې شی. فَكَذَا الْقَضَاءُ نوهم دغه ډول حکم قضاء هم (قبلولې شی)

تشريح:- خو که يوکس په حيثيت د قاضی ياپه حيثيت د حکم د خپل مورپلار، يا اولاد،يا د ښځې خلاف حکم ورکړو.نودا به قبلولې شی.ځکه چې په دې صورت کي د تهمت امکان نه کيدلو په وجه ددوی خلاف ګواهی قبلولې شی.نو ددوی خلاف به فيصله او حکم هم قبلولې شی.

وَلَوْ حَكَّمَا رَجُلَيْنِ لَا بُدَّ مِنْ اجْتِمَاعِهِمَا اوکه دوې (دوه) سړو دوې (دوه) سړی حکم جوړ کړل.نو ددوی دواړو جمع کيدل ضروري دی. لِأَنَّهُ أَمْرٌ يُحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الرَّأْيِ، ځکه چې حکم ورکول داسې امر دې.چه په دې کي د رائې اجتهاد ته اړتيا دې. وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ.

تشريح:- اوکه دوې (دوه) سړو دوې (دوه) سړی پخپله نزاعی معامله کي حکم مقرر کړل.نو په فيصله باندې د دواړو اتفاق ضروري دې.ځکه چې بعض معاملات د رائې او مشورې محتاج وی.نود مدعی او مدعی عليه دواړه کسانو دوې (دوه) سړی حکم مقررول ددې خبرې علامت دې.چه دواړه سړی د دواړه حکمو په رائې سره فيصله غواړي.او کله چې مدعی او مدعی عليه دواړه اجتماعی طور باندې د دواړه حکمو په رائې سره فيصله غواړي.نو په دې دواړو کي که يوحکم حکم ورکړو.او دوهم حکم ورنکړو.نودا حکم به جائز او قبول نه وی.

## مَسَائِلُ شَتَّى مِنْ كِتَابِ الْقَضَاءِ

(دا) په کتاب القضاء کي د متفرق مسئلو بيان دې.

تشريح:- دلته کي د ،،کتاب ادب القاضی،، په آخرکي د ،،مسائل شتی،، په عنوان سره هغه مسائل ذکرکولې شی.کوم چې د کتاب ادب القاضی لاندې ذکر کاوه نه پاتې شوی دی.ځکه چې د مصنفينو دا عادت دې.چه په يو کتاب يا باب کي که څه مسئلې د ذکر کاوه نه پاتې شوی وی.نو هغه ددې کتاب يا باب په آخر کي ذکرکولې شی.اود هغې عنوان، مسائل شتی، يا مسائل منثوره، يا مسائل متفرقه ايخودلې شی.(عنايه)

قَالَ وَإِذَا كَانَ عُلُوٌّ لِرَجُلٍ وَسُفْلٌ لِآخَرَ فَلَيْسَ لِصَاحِبِ السُّفْلِ أَنْ يَتِدَ فِيهِ وَتَدًا وَلَا يَنْقُبَ فِيهِ كُوَّةً عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ) اوکه بالا خانه يو سړی او لاندينې کور د بل سړی وو نو د امام ابوحنيفه پر(په)نيز لاندينی کور والا ته دا اختيار نشته چې پر(په) دې کښې ميخ ټک وهی ونه (دا اجازت شته) پر(په) دې کښې رشن دان جوړ کړی مَعْنَاهُ بِغَيْرِ رِضَا صَاحِبِ الْعُلُوِّ او د دې مطلب دا دې چې د بالاخانې والاد د رضا مندئ نه بغير (داسې کار کوی)

حل اللغة: علو-پوته برخه -سفل-ښکته برخه -يتد-ميخ ټک وهی -کوة-روشندان

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که بالاخانه (پورتنې چت) د يوسړی وی.او لاندې کور د بل چا وی.نود حضرت امام ابوحنيفه ﷫ په نيز لاندينی کور والا ته دا اختيار نشته.چه دې د بالاخانې والا د اجازت نه بغير په ديوالونوکي ميخونه ټک وهی.اونه به په دې کي روشندان جوړوی.اونه د پاس چت والا ته دا اختيار شته.چه دې د

لاندینی چت والا داجازت نه بغیر خپله بالاخانه باندې څه عمارت تعمیر کړی.یا په دې باندې نور زیاتی لرګی کیږدی.کوم چې د وړاندې نه نه وو.یا په دې باندې د پردې دیوال یا بیت الخلاء ( لیټرین) جوړ کړی.

وَقَالَا: او صاحبین فرمایي يَصْنَعُ مَا لَا يَضُرُّ بِالْعُلُوِّ چې کوم څیز بالاخانې لپاره نقصاني نه وی هغه جوړولې شی وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا أَرَادَ صَاحِبُ الْعُلُوِّ أَنْ يَبْنِيَ عَلَى عُلُوِّهِ.او هم پر(په) دې اختلاف (مبنی دی) چې بالاخانې والا هر هغه څیز جوړولی شی چې د لاندینی عمارت لپاره نقصانی نه وی

تشریح:- او صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه په دواړوکي هریو کس ته د هغه کار کاوه اختیار دې.کوم چې د دوهم لپاره مضر نه وی.یعنی لاندینی کور والا هرهغه شی جوړولي شی.کوم چې بالاخانې ته نقصان نه رسوی.او بالاخانې والا هر هغه شی جوړولي شی.چه د لاندینی عمارت لپاره مضر نه وی.

قِيلَ مَا حُكِيَ عَنْهُمَا تَفْسِيرٌ لِقَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فَلَا خِلَافَ([1]) ونیلی شوی دی.چه د صاحبینو رحمهما الله نه کوم روایت دې.هغه د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول تفسیر دې.نو ( د دواړو په منځ کې به) هیڅ اختلاف نه وی.

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه د بعض مشائخو رحمهم الله خیال دادې.چه د صاحبینو رحمهما الله قول د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د قول تفسیر دې.یعنی حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په هغه صورت کې منع کړې ده.کله چې د دوهم لپاره نقصان وی.او کله چې څه ضرر نه وی.نو امام ابوحنیفه رحمه الله هم نه منع کوی.لکه څنګه چې د دوهم کور دی.نود امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله په نیز د بل کورته د نقصان رسولونه بغیر د لاندینی کور والا او بالاخانې والا دواړو کې هریو لپاره پخپل کور کې تصرف کول جائز دی.

وَقِيلَ الْأَصْلُ عِنْدَهُمَا الْإِبَاحَةُ او ونیلی شوی دی.چه د صاحبینو رحمهما الله په نیز اصل اباحت دې.

تشریح:- او بعض مشائخ فرمائي.چه د صاحبینو رحمهما الله قول د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د قول تفسیر نه دې.بلکه د صاحبینو رحمهما الله په نیز اصل اباحت دې.خکه چې د لاندینی کور والا پخپل کور کې او بالاخانې والا پخپل کورکې کوم تصرف کړې دې.پخپل ملک کې ئې تصرف کړې دې.او ملك تقاضا کوی.چه مطلقاً تصرف جائز وی.او تصرف به صرف په هغه صورت کې حرام وی.کله چې دوهم ته ضرر لاحق وی.یعنی د کور مالك ته د تصرف ممانعت صرف د بل د ضرر په وجه کیدای شی.خوکله چې دا امر مشتبه شو.چه د احدهما پخپل کور کې د تصرف په وجه به بل ته ضرر وی اوکه نه؟ نو دې به د تصرف کاوه نه منع کول جائز نه وی. خکه چې د تصرف اباحت په یقین سره ثابت دې.او ممانعت په شك سره ثابت دې.او یقین په شك سره نه زائل کیږی.په دې وجه د ضرر مشتبه کیدلو په صورت کې اباحت کوم چې یقینی امر دې.د مشکوك ممانعت په وجه به نه زائل کیږی.

لِأَنَّهُ تَصَرَّفَ فِي مِلْكِهِ وَالْمِلْكُ يَقْتَضِي الْإِطْلَاقَ دلیل دا دې چې دا پخپل ملك کې تصرف دې.او ملك علی الاطلاق اباحت غواړی. وَالْحُرْمَةُ بِعَارِضِ الضَّرَرِ او حرمت د عارض ضرر په وجه دې. فَإِذَا أَشْكَلَ لَمْ يَجُزِ الْمَنْعُ نو کله چې مشتبه شو.نو ممانعت به جائز نه وی.

حل اللغة: ① یقتضی-تقاضا کوی-② الاطلاق-جواز\رواوالي-③ اشکل-مشکل شو-المنع-منع کیدل

تشریح:- د بعض مشائخو رحمهم الله ددې قول دلیل دادې.چه په دواړوکي هر یو پخپل ملك کې تصرف کوی.او پخپل ملك کې تصرف کول جائزدی.نو دواړو لپاره به پخپل خپل ملك کې تصرف کول جائز وی.او پاتې شو ممانعت، نودا هغه وخت کیدای شی.کله چې بل ته ضرر وی.

[1]) القول الراجح هو هذا من التطبيق بين الروايات وقال العلامة ابن نجيم المصري رحمه الله والمختار للفتوى أنه إذا اشكل أنه يضر أم لا يملك وإذا علم أنه لايضر يملك كذا في البحرالرائق (۲۹/۷) وكذا يعلم من عبارة فتح القدير (۴۱۱/۶) ووالكفاية (۴۱۱/۶) نقلاً عن القول الراجح (۱۱۸/۱۲)-



وَالْأَصْلُ عِنْدَهُ الْحَظْرُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اصل ممانعت دې. لِأَنَّهُ تَصَرَّفَ فِي مَحَلٍّ تَعَلَّقَ بِهِ حَقٌّ مُحْتَرَمٌ لِلْغَيْرِ كَحَقِّ الْمُرْتَهِنِ وَالْمُسْتَأْجِرِ خکه چې دا په داسې محل کې تصرف دې.چه ددې سره د بل حق محترم متعلق دې.لکه د مرتهن او مستاجر حق،

تشریح:- اود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اصل ممانعت دې.خکه هرکله چې د لاندینی کور والا په لاندینی کور کې تصرف اوکړو.نوده په داسې محل کې تصرف کړې دې.چه دې سره د دوهم یعنی د بالاخانې والا حق محترم معلق دې.او دغه ډول کله چې بالاخانې والا په بالاخانه کې تصرف اوکړو.نوده هم په داسې محل کې تصرف کړې دې.چه دې سره د بل یعنی د لاندینی کور والا حق محترم متعلق دې.اود بل حق دچا ملك سره متعلق کیدل، مالك په خپل ملك کې د تصرف نه منع کوی.لکه د مرتهن حق، په شئ مرهونه کې مالك د تصرف کاوه نه منع کوی او په اجرت باندې د آخستونکی حق په شئ مستاجر کې مالك د تصرف نه منع کوی.یعنی کوم شئ چې مرتهن سره د رهن په طور وی.یا مستاجر سره د اجارې په طور وی.نو چونکه ددې سره د مرتهن یا مستاجر حق متعلق شو.په دې وجه مالك ته په دې کې د تصرف کاوه اختیار نشته.نوهم دغه ډول لاندینی کور سره چونکه د بالاخانې والاحق متعلق شوې دې.په دې وجه لاندینی کور والا ته به پخپل لاندینی‌کور کې د تصرف اختیار نه وی.او بالاخانې سره چونکه د لاندینی کور والا حق متعلق شوې دې.په دې وجه د بالاخانې مالك ته به په بالاخانه کې د تصرف اختیار نه وی.

وَالْإِطْلَاقُ بِعَارِضٍ او اباحت د عارض په وجه دې. فَإِذَا أَشْكَلَ لَا يَزُولُ الْمَنْعُ نو کله چې مشتبه شو.نو ممانعت به نه زائل کیږی. عَلَى أَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ ضَرَرٍ بِالْعُلُوِّ مِنْ تَوْهِينِ بِنَاءٍ أَوْ نَقْضِهِ فَيُمْنَعُ عَنْهُ. ددې نه علاوه داسې کول د بالاخانې عمارت کمزوري کول،یا د ماتولو د ضرر نه خالی نه دې.نو ددې څخه به منع کولې شی.

حل اللغة: ① امتنع-منع شی-الانفاق-خرچ کول-احیاء-ژوندی کول-ولد-بچې

تشریح:- حاصل داچه اصل د تصرف ممنوع کیدل دی.او اباحت د رضامندئ عارض کیدلو په وجه دې.یعنی د لاندینی کور یا بالاخانې والا ته پخپل کورکې د تصرف اختیار هغه وخت دې.کله چې دده اندیوال راضی وی.نوکه د اندیوالان رضا او عدم رضا مشتبه شوه.نوحکم به خپل اصل یعنی ممانعت باندې پاته وی.خکه چې د تصرف ممانعت کوم چې اصل او یقینی شئ دې.هغه به په مشکوك او مشتبه اباحات سره نه زائل کیږی.ددې نه علاوه په لاندینی کورکې د تصرف په وجه د بالاخانې ماتیدلو، یا د کمزوری کیدو د ضرر امکان هم دې.اوپه بالاخانه کې د تصرف په وجه په لاندینی کور کې هم د ضرر امکان دې.اود خپلې فائدې لپاره چاته ضرر رسول شرعاً جائز نه دې.لکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی. «لاضرر ولاضرار في الاسلام» نود لاندینی کور والا ته به پخپل لاندینی کورکې ، بالاخانې والا ته د ضرر رسولو لپاره تصرف کول ناجائز او ممنوع وی.او بالاخانې والا ته به په خپله بالاخانه کې ،لاندینی کور ته ضرر رسولو لپاره تصرف کول ناجائز او ممنوع وی.

قَالَ وَإِذَا كَانَتْ زَائِغَةٌ مُسْتَطِيلَةٌ اوکه یو زائغه ( سړك، لاره، کوڅه) مستطیله وی. تَنْشَعِبُ مِنْهَا زَائِغَةٌ مُسْتَطِيلَةٌ وَهِيَ غَيْرُ نَافِذَةٍ چې ددې نه دویمه زائغه مستطیله وتلې وی. حالانکه دا نافذه ( آرپار) وتلې نه ده. فَلَيْسَ لِأَهْلِ الزَّائِغَةِ الْأُولَى أَنْ يَفْتَحُوا بَابًا فِي الزَّائِغَةِ الْقُصْوَى نود رومبی زائغه والا خلګو ته دا اختیار نشته.چه دوی په ( دویمه) زائغه سفلی کې دروازه کلاؤ کړی.

حل اللغة: زائغة-کوڅه\لاره-مستطیلة-اوږده-تنشعب-اوځی\تیریږی-القصوی-لنډه

تشریح:- مسئله داده.که په محله کې یو اوږد سړك او لاره وی.که نافذه وی.( یعنی بل اړخ ته وتلې وی) اوکه غیر نافذه وی.یعنی بل اړخ ته وتلې نه وی.بلکه د یو اړخه بنده وی.د زائغه نافذه په صورت کې به داسې وی.

بهرحال که زانغه مستطيله (اوږده لاره) وی. که نافذه وی. اوکه غيرنافذه وی. ددې نه دويمه زانغه مستطيله وی. اودا دوهم زانغه (کوڅه) غير نافذه وی. نو په زانغه اولی کې هغه کس چې دده کور د دويمې زانغه منشعبه (وتلې شوې کوڅه) په کوټ باندې راځي. ده ته به زانغه منشعبه اړخ ته د دروازې اوبنکلو شرعی حق نه وی.

لِأَنَّ فَتْحَهُ لِلْمُرُورِ دليل دا دې چې دروازه کلاوول د تيريدلو لپاره دی. وَلَا حَقَّ لَهُمْ فِي الْمُرُورِ إِذْ هُوَ لِأَهْلِهَا خُصُوصًا حالانکه د زانغه اولی والا خلگو ته د تيريدلو حق نشته. په دې وجه زانغه سفلی خاص کړ د زانغه سفلی والا خلگو حق دې. حَتَّى لَا يَكُونَ لِأَهْلِ الْأُولَى فِيمَا بِيعَ فِيهَا حَقُّ الشُّفْعَةِ تردې چې په زانغه سفلی کې چې کوم کور خرڅيږی. په دې کې به زانغه اولی والا خلگو لپاره حق شفعه نه وی.

حل اللغة: ① فتح-کولاوهل-مرور-تيريدل-خصوصا-خاص کړ-بيع-خرڅول

تشريح:- ددې دليل دادې. چه دروازه د آمدورفت (تلو راتلو) لپاره کلاوولې شی. حالانکه زانغه اولی والا خلگو ته په زانغه ثانيه (کومه چې د غټې لارې نه وتلې ده) کې د تللو راتگ و هيڅ حق نشته. زانغه ثانيه خو خاص کړ د هغه خلگو لپاره ده. کوم چې په دې کې آباد دی. هم دا وجه ده. که په زانغه ثانيه کې کومه مځکه يا کور خرڅ شو. نود زانغه اولی والا خلگو ته په دې کې د شفعه حق نه وی. زانغه اولی والا ته د شفعې حق نه کيدل ددې خبرې ښکاره علامت دې. چه زانغه ثانيه (منشعبه) اړخ ته زانغه اولی والا خلگو ته په هيڅ شان هيڅ حق نشته. اوهرکله چې زانغه اولی والا خلگو ته په زانغه ثانيه کې په هيڅ شان هيڅ يو حق حاصل نه دې. نو زانغه اولی والا خلگ وته په زانغه ثانيه کې د دروازې کلاوولو حق هم حاصل نه وی.

بِخِلَافِ النَّافِذَةِ لِأَنَّ الْمُرُورَ فِيهَا حَقُّ الْعَامَّةِ په خلاف د زانغه نافذه (والا خلگ و). ځکه چې په دې کې عامو خلگو ته د تيريدلو حق دې.

حل اللغة: النافذة-کولاو-المرور-تيريدل-العامة-عام خلق--

تشريح:- البته که زانغه ثانيه (منشعبه) نافذه وی. يعنی ددې آخر اړخ ته لاره وتلې وی. لاره بنده نه وی. نو په دې کې به زانغه اولی والا خلگو ته د دروازې کلاوولو اود تلو راتلو پوره پوره حق وی. ځکه چې په دې صورت کې په زانغه ثانيه نافذه کې عامو خلگو ته د تلو راتلو حق حاصل دې. خاص طور باندې د زانغه ثانيه والا خلگو حق نشته. اوهرکله چې عامو خلگو ته د تلو راتلو حق دې. نو زانغه اولی والا خلگو ته به هم د تلو راتلو حق وی. اوهرکله چې زانغه اولی والا خلگو ته د تلو راتلو حق دې. نو دوی ته به زانغه ثانيه اړخ ته د دروازې کلاوولو حق هم حاصل وی. د زانغه ثانيه (منشعبه) نافذه (چې آرپار وتلې وی) شکل دادې

قِيلَ الْمَنْعُ مِنَ الْمُرُورِ لَا مِنْ فَتْحِ الْبَابِ ويلی شوی دی. چه د تيريدلو نه منع کړې شوی دی. د دروازه کلاوولو نه نه دی منع کړې شوی. لِأَنَّهُ رَفْعُ بَعْضِ جِدَارِهِ ځکه چې دروازه کلاوول خو خپل ديوال ماتول دی.

حل اللغة: المنع-منع-فتح-کولاوهل-الباب-دروازه-جدار-ديوال

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائي. چه د زانغه ثانيه (منشعبه) غيرنافذه په اړه کې چې دا ويلی شوی دی. چه د زانغه اولی والا خلگو لپاره زانغه ثانيه اړخ ته د دروازې اوبنکلو حق حاصل نه دې. د بعض مشائخو په قول ددې مطلب دادې. چه د زانغه اولی والا خلگو زانغه ثانيه غير نافذه کې تلل راتگ ممنوع دی. زانغه اولی والا خلگو لپاره زانغه ثانيه غيرنافذه اړخ ته دروازه کلاوول ممنوع نه دی. ځکه چې دروازه کلاوول د خپل ديوال يو برخه غورزولو نوم دې. حالانکه ده ته د خپل پوره ديوال غورزولو حق دې. نود يوې برخې (حصې) غورزلو حق به په درجه اولی وی.

وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْمَنْعَ مِنَ الْفَتْحِ او اصح دادی. چه ممانعت په دروازه کلاوولو سره دې. لِأَنَّ بَعْدَ الْفَتْحِ لَا يُمْكِنُهُ الْمَنْعُ مِنَ الْمُرُورِ فِي كُلِّ سَاعَةٍ ځکه چې د دروازه کلاوولو نه روسته هروخت د تيريدلو نه منع کول ممکن نه دی. وَلِأَنَّهُ عَسَاهُ يَدَّعِي الْحَقَّ فِي الْقُصْوَى بِتَرْكِيبِ الْبَابِ او ځکه چې ډيره ممکن ده. چه دې دروازه اولگوی. او په زانغه سفلی کې د حق دعوه



اوکړی.

حل اللغة: ① ساعة-وخت-② عسی-نزدې ده-③ يدعی-دعوی کوی-④ ترکيب-لگول\جوړول

تشريح:- خو اصح دادی. چه زانغه اولی والا خلگو ته زانغه ثانيه اړخ ته د دروازې کلاوولو نه منع کړې شوی دی. ځکه چې د دروازه کلاوولو نه روسته هروخت د تلو راتلو نه منع کول او ددې نگرانی کول تقريباً ناممکن دی. په دې وجه د تلو راتلو نه د منع کاوه لپاره به دروازه کلاوول ممنوع وی. دويمه وجه داده. که زانغه اولی والا خلگو ته زانغه ثانيه اړخ ته د دروازه کلاوولو اود دروازې لگولو اجازت ورکړې شی. نودا خطره به هروخت وی. چه د زانغه اولی والا خلگ دځه زمانې پورې په زانغه ثانيه کې د تلو راتلو حق يا د شفعه وغيره د حق دعوه اونکړی. او په دې کې د زانغه ثانيه والا ښکاره نقصان دې. په دې وجه زانغه ثانيه غيرنافذه اړخ ته د زانغه اولی والا خلگ د دروازې راوبنکلو نه منع کړې شوی دی.

### ګول کوڅه چې دواړه سرونه ئې اوګډې کوڅې سره ملاؤ شوی وی. د دواړو کوڅو اوسيدونکو د اختيار حکم

وَإِنْ كَانَتْ مُسْتَدِيرَةً اوکه زانغه ثانيه مستديره (ګول) وی. قَدْ لَزِقَ طَرَفَاهَا فَلَهُمْ أَنْ يَفْتَحُوا بَابًا چې ددې دواړه طرفونه ملاؤ شوی وی. لِأَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ حَقَّ الْمُرُورِ فِي كُلِّهَا نود زانغه اولی والا خلگو ته اختيار دې. چه دوی (زانغه مستديره اړخ ته) دروازه کلاؤ کړی.

حل اللغة: مستديرة-ګول-لزق-جخت-طرف-اړخ-باب-دروازه

تشريح:- ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائي. که زانغه مستطيله (اوږده لاره، مين روډ) اولی نه دويمه زانغه مستديره (ګول) وتلې وی. چه ددې دواړه طرفونه زانغه مستطيله اولی سره ملاؤ شوې وی. اودا زانغه مستطيله اولی غير نافذه وی. نود زانغه مستطيله اولی اود زانغه مستديره ثانيه هر اوسيدونکی ته دا اختيار دې. چه دې خپله دروازه کوم اړخ ته چې غواړی. کُلاؤ کړی.

إِذْ هِيَ سَاحَةٌ مُشْتَرَكَةٌ ځکه چې دا يومشترکه غولې (صحن) دې. وَلِهَذَا يَشْتَرِكُونَ فِي الشُّفْعَةِ إِذَا بِيعَتْ دَارٌ مِنْهَا اوپه دې وجه که په دې کې يوکور خرڅ کړې شو. نو په شفعه کې به واړه شريك وی.

حل اللغة: ① ساحة-ميدان\صحن-② يشترك-شريکيږی-③ بيعت-خرڅ کړې شی-④ دار-کور

تشريح:- دليل دا دې چې دا غولې (صحن) د ټولو لپاره مشترك دې. په دې وجه به په دوی کې هريو ته د تلو راتلو حق حاصل وی. هم دا وجه ده. چه په دې پوره کوڅه کې که يوکور خرڅ شو. نود شريعت مطابق په شفعه کې به واړه شريك وی. ددې صورت دادې

### د مدعی او په کور د قابض خپل منځ کښې د صلح کولو حکم

قَالَ وَمَنِ ادَّعَى فِي دَارٍ دَعْوَى وکه يوکس په يوکور کې دعوه اوکړله. وَأَنْكَرَهَا الَّذِي هِيَ فِي يَدِهِ وهغه کس دچا په قبضه کې چې کور دې. هغه انکار اوکړو. ثُمَّ صَالَحَهُ مِنْهَا فَهُوَ جَائِزٌ بيا منکر مدعی سره ددې دعوې په سلسله کې صلح اوکړله. نودا جائز ده. وَهِيَ مَسْأَلَةُ الصُّلْحِ عَلَى الْإِنْكَارِ اودا په انکار باندې د صلح کاوه مسئله ده. وَسَنَذْكُرُهَا فِي الصُّلْحِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى اودا به موږ انشاء الله په کتاب الصلح کې ذکرکوو. وَالْمُدَّعِي او مدعی (د کوم شئ چې دعوه شوې ده)

حل اللغة: ① ادعی-دعوی اوکړه-② انکر-انکار اوکړو-③ يد-لاس\قبضه-④ صالح-صلح اوکړی

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. چه يوکور مثلاً د خالد په قبضه کې دې. خو حامد دعوه اوکړله. چه په دې کورکې زماحق هم دې. خودا ئې بيان نکړل چه څومره حق دې. او قابض د حامد د دعوې نه انکار اوکړو. بيا قابض (خالد) د مدعی (حامد) سره ددې حق په اړه کې صلح اوکړله. مثلاً قابض د مدعی د حق پنځه سوه روپۍ اداکاوه لپاره راضی شو. او مدعی دا قبوله کړله. نودا صلح جائز ده. او ددې مسئلې نوم،، مسئلة صلح عن الانکار،، ده. دا به په تفصيل سره کتاب الصلح کې ذکرکولې شی.

وَإِنْ كَانَ مَجْهُولًا فَالصُّلْحُ عَلَى مَعْلُومٍ عَنْ مَجْهُولٍ جَائِزٌ عِنْدَنَا اګرچه مجهول ده. خو په معلوم باندې د مجهول په باره کې صلح کول زمونږ په نیز جائز دی. لِأَنَّهُ جَهَالَةٌ فِي السَّاقِطِ ځکه چې دا جهالت په داسې څیز کې دې چه ساقط دې. فَلَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ عَلَى مَا مَرَّ په دې وجه به دا مفضي الی المنازعه نه وی. لکه چې په کتاب الصلح کې ذکر دی.

**حل اللغة:** مجهول-نامعلومه-الساقط-ساقط شوې-المنازعة-جګړه-عرف-معلومه شوې

**تشریح:**- خوکه داسوال اوکړې شی. چه دلته کې مدعی ( د کوم شئ په اړه کې چې دعوه شوې ده) مجهول ده. اود دعوه د صحت لپاره د مدعی مقدار معلومیدل شرط دی. نود مدعی مجهول کیدلو په صورت کې به صلح کول څنګه صحیح وی. یعنی صلح د مدعی په دعوه باندې مرتب ده. اود مدعی مجهول کیدلو په وجه دعوه صحیح نشوه. نو په دې باندې صلح څنګه مرتب کیدای شی؟ ددې ځواب دادې. چه مدعی اګرچه مجهول ده. خو زمونږ په نیز دمجهول په اړه کې معلوم شئ باندې صلح کول جائز ده. اودا ځکه جائز ده. چه مدعی کومه چې مجهول ده. هغه د صلح په نتیجه کې د قابض د ذمه نه ساقطیږی. او داسې جهالت کوم چې په ساقطیدونکی شئ کې وی. هغه جګړه نه پیداکوی. حالانکه مانع د جواز هغه جهالت دې. کوم چې جګړه پیداکړی. نوهر کله چې دا جهالت مفضی الی المنازعه نه دې. نودا صلح به هم جائز وی.

## په مقبوضه کور اول د هبه یا د اخستلو دعوه اود بینه پیش کولو حکم

قَالَ وَمَنِ ادَّعَى دَارًا فِي يَدِ رَجُلٍ چې ده دا کور په فلانی وخت ماته هبه کړې دې. أَنَّهُ وَهَبَهَا لَهُ فِي وَقْتِ كَذَا چې ده دا کور په فلانی وخت ماته هبه کړې دې. فَسُئِلَ الْبَيِّنَةَ فَقَالَ جَحَدَنِي الْهِبَةَ فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْهُ نو دده نه بینه طلب کړې شو. نو مدعی اووئیل. چه هغه د هبې نه انکار اوکړو. نو ما د هغه نه دا کور واخستلو. وَأَقَامَ الْمُدَّعِي الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ قَبْلَ الْوَقْتِ الَّذِي يَدَّعِي فِيهِ الْهِبَةَ اومدعی په اخستلو باندې د هغه وخت نه وړاندې بینه قائم کړل. په کوم وخت چې دې دهبې دعوه کوی. لَا تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ نو دده بینه به نشی قبلولې.

**حل اللغة:** ① وهب-ببښل-② جحد-انکاراوکړو-③ البنية-ګواهان-④ الشراء-اخستل

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې. چه یوسړی مثلاً حامد د دوهم سړی مثلاً د خالد په مقبوضه کور په اړه کې دعوه اوکړله. چه خالد خپل داکور په لسم رجب سن ۱۴۲۸ھ کې ماته هبه کړې او سپارلې دې. خو قابض یعنی خالد د حامد ددې دعوې انکار اوکړو. نو قاضی د مدعی یعنی حامد نه د بینه مطالبه اوکړله. نو مدعی اووئیل. چه زما سره په هبه باندې بینه موجود نشته. البته په اخستلو باندې بینه موجود دی. په دې طریقه چې د هبه او تسلیم نه روسته واهب ( هبه کونکی) خپل کور واپس واخستلو. اود هبه په طور ور کاوه نه نې انکار اوکړو. نوما د خالد نه دا کور واخستلو. چه په اخستلو باندې بینه موجود دی. نو مدعی یعنی حامد د ذکرشوی کور په اخستلو باندې ګواهان پیش کړل. اودې ګواهانو ګواهی ورکړله. چه مدعی یعنی حامد دا کور د خالد نه په اول رجب سن ۱۴۲۸ھ باندې اخستې دې. حاصل داچه ګواهانو د کور د اخستلو هغه وخت بیان کړو. کوم وخت یعنی اول رجب چې دې د ۱۵ رجب نه مخکې دې. په کوم کې چې د هبه دعوه کوی. نود مدعی دا بینه به نشی قبلولې.

لِظُهُورِ التَّنَاقُضِ دلیل دا دې چې تناقض ښکاره دې. إِذْ هُوَ يَدَّعِي الشِّرَاءَ بَعْدَ الْهِبَةِ ځکه چې مدعی د هبې نه روسته د اخستلو دعوه کوی. وَهُمْ يَشْهَدُونَ بِهِ قَبْلَهَا او ګواهان د هبه نه وړاندې د اخستلو شهادت ورکوی.

**تشریح:**- دلیل دا دې چې په ذکرشوی صورت کې د دعوه اوشهادت په منځ کې تناقض دې. او تناقض ځکه دې. چه مدعی د اخستلو دعوه د هبه نه روسته کړې دې. په دې طریقه چې مدعی اووئیل. «ثم جحد الهبة فاشتريتها منه» هغه د هبې انکار اوکړو. نوما د هغه نه داکور واخستلو. د «فاشتريته» ،، فاء،، تعقیب لپاره ده. او فاء تعقیبیه هغه ته وائی. چه ددې مابعد په ماقبل باندې مرتب وی. یعنی ددې مابعد وجوداً موخر وی. او ددې ماقبل وجوداً مقدم وی. معلومه شوه. چه مدعی یعنی حامد د هبه نه روسته د اخستلو دعوه کوی.



وَلَوْ شَهِدُوا بِهِ بَعْدَهَا تُقْبَلُ لِوُضُوحِ التَّوْفِيقِ اوکه ګواهان د هبه نه روسته د اخستلو ګواهی ورکړی. نو ګواهی قبلولې شی. ځکه چې توفیق ښکاره دې.

**حل اللغة:** ① شهدوا-ګواهی ورکړه-② بعد-پس-③ وضوح-ښکاره کیدل-④ التوفيق-موافقت

**تشریح:**- اوکه ګواهانو د هبه نه وړاندې د اخستلو ګواهی ورکړله. نود ګواهانو ګواهی د مدعی د دعوې مخالف شوه. اود دعوه او ګواهئ په منځ کې د تناقض او اختلاف په صورت کې چونکه ګواهی نه قبلیږی. په دې وجه په دې صورت کې به هم د مدعی یعنی حامد بینه نه قبلیږی. اوکه د مدعی ګواهانو د هبه نه روسته د اخستلو ګواهی ورکړله. یعنی مدعی( حامد) چې په کوم وخت کې دهبه دعوه کوی. د هغې نه روسته نې اخستلو باندې ګواهی ورکړله. مثلاً دا ګواهی نې ورکړله. چه مدعی ( حامد) دا کور د خالد نه پنځلسم رجب سن ۱۴۲۸ھ باندې اخستې دې. نو په دې صورت کې د مدعی دعوه اود ګواهانو ګواهئ کې چونکه هیڅ تناقض او اختلاف نشته. په دې وجه به دا ګواهی قبلولې شی.

وَلَوْ كَانَ ادَّعَى الْهِبَةَ ثُمَّ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ قَبْلَهَا اوکه د هبه دعوه نې اوکړله. بیا نې د هبه نه وړاندې اخستلو باندې بینه قائم کړل. وَلَمْ يَقُلْ جَحَدَنِي الْهِبَةَ فَاشْتَرَيْتُهَا لَمْ تُقْبَلْ أَيْضًا اودا نې اونه وئیل. چه هغه ماته د هبه کاوه نه انکار کړې وو. بیا ما دا واخستلو. نو بیا به هم بینه نه قبلیږی. ذَكَرَهُ فِي بَعْضِ النُّسَخِ هم دغه ډول په بعضو نسخوکې ذکر دی.

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. که مدعی یعنی حامد د هبې دعوه اوکړله. بیا نې د عقدهبه نه وړاندې په اخستلو باندې بینه قائم کړل. یعنی حامد اووئیل. چه خالد خپل دا کور ۲۰ رجب سن ۱۴۲۸ھ ما لپاره هبه کړې دې. بیاحامد چې کوم ګواهان پیش کړل. نو دوی ګواهی ورکړله. چه حامد دا کور اول رجب سن ۱۴۲۸ھ باندې د خالد نه اخستې دې. البته مدعی( حامد) دا اونه وئیل. «ثم جحدني الهبة فاشتريتها» نو په دې صورت کې به هم د مدعی بینه نشی قبلولې. دجامع صغیر په بعض نسخوکې هم دغه ډول ذکر دی.

لِأَنَّ دَعْوَى الْهِبَةِ إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْمِلْكِ لِلْوَاهِبِ عِنْدَهَا، دلیل دا دې چې د هبه دعوه کول د مدعی د اړخه د هبه کونکی د ملك اقرار دې. وَدَعْوَى الشِّرَاءِ رُجُوعٌ عَنْهُ فَيُعَدُّ مُنَاقِضًا اود اخستلو دعوه کول ددې اقرار نه رجوع ده. نو دې به د تناقض مدعی شمارلې کیږی.

**حل اللغة:** الهبة-ببښل-الواهب-ببښونکې-الشراء-اخستل-رجوع-واپس کیدل

**تشریح:**- ددې دلیل دادې. چه د مدعی یعنی دحامد دهبې دعوه کول، ددې خبرې اقرار کول دی. چه د هبه نه وړاندې یعنی یکم محرم باندې د اخستلو دعوه کول دخپل مخکنی اقرار نه رجوع کول دی. یعنی د حامد دا دعوه کول چې ما یکم محرم باندې د خالد نه دا کور اخستې دې. ددې خبرې دعوه ده. چه خالد ۱۵ رجب باندې داکور د مالك نه اخستې وو. حالانکه حامد ددې نه وړاندې لسم رجب باندې د خالد د مالك کیدلو اقرارکړې دې. نو په دې صورت کې د مدعی په دعوو او اقوالوکې چونکه تناقض دې. ځکه به نه دده د اخستلو دعوه معتبر وی. اونه به په دې باندې ګواهی معتبر وی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا ادَّعَى الشِّرَاءَ بَعْدَ الْهِبَةِ په خلاف ددې کله نې چې د هبه کاوه نه روسته د اخستلو دعوه کړې وی. لِأَنَّهُ تَقَرَّرَ مِلْكُهُ عِنْدَهَا ځکه چې دا د هبې په وخت د هبه کونکی ملك ثابتوی.

**تشریح:**- البته که مدعی( حامد) د هبه نه روسته د کور د اخستلو دعوه اوکړله. مثلاً د هبه دعوه نې لسم رجب کې وه. اود اخستلو په اړه کې نې دا دعوه اوکړله. چه ما دا کور په، پنځلسم رجب کې اخستې دې. نو په دې صورت کې د اخستلو دعوه اوبه دې باندې بینه به قبلولې شی. ځکه چې په پنځلسم رجب کې د اخستلو دعوه لسم رجب کې د خالد ملك ثابتوی. نوکله چې نې دعوه اوکړله. چه خالد خپل کورلسم رجب باندې ما ته هبه کړې دې. بیا نې هم د خالد مالك کیدلو اقرار اوکړو. اوهر کله چې نې دا دعوه اوکړله. چه په پنځلسم رجب ما دا کور د خالد نه اخستې دې. نو بیاهم د لسم رجب نه

پنځلسم رجب پورې نې دخالد د مالك کیدلو اقرار کړې دې.اوهرکله چې په دواړه دعووکې د خالد د ملك اقرار دې.نود خالد لپاره په دعوو او اقوالوکې هیڅ تناقض پاتې نشو.اوهرکله چې د خالد په دعووکې تناقض پاتې نشو.نود خالد دعوه او په دې باندې بینه قبلولوکې به هیڅ باك نه وي.

## د بائع په خصومت پرېښولو وینځې سره د وطی کولو حکم

| |
|---|
| وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ اشْتَرَيْتَ مِنِّي هَذِهِ الْجَارِيَةَ اوکه یوکس بل ته اوونیل.تا زما نه دا وینځه اخستې وه. فَأَنْكَرَ الْآخَرُ إِنْ أَجْمَعَ الْبَائِعُ عَلَى تَرْكِ الْخُصُومَةِ وَسِعَهُ أَنْ يَطَأَهَا او دوهم انکار اوکړو.نوکه بائع د خصومت نه کاوه پخه اراده اوکړله.نود بائع لپاره دې وینځې سره وطی کول حلال دی. |

**حل اللغة:** ① الجارية-وینځه-② انکر-انکاراوکړو-③ الترک-پرېښودل-④ یطا-وطی کوی

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی بل ته اوونیل.چه تا زما دا وینځه اخستې وه.خو مشتری ددې انکار اوکړو.نو اوس که بائع دا عزم اوکړو.چه زه به مشتری سره جګړه او خصومت ( او دعوه) نه کوم.نو بائع لپاره دې وینځې سره وطی کول حلال دی.او بعض حضرات فرمائی.چه بائع د زړه په عزم (او پخې ارادې) سره په ژبه هم دا اووائی.چه زه به مشتری سره خصومت نه کوم.نو بائع لپاره دې وینځې سره وطی کول حلال دی.

| |
|---|
| لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَمَّا جَحَدَهُ كَانَ فَسْخًا مِنْ جِهَتِهِ،دلیل دا دې کله چې مشتری انکار اوکړو.نو د هغه د اړخه فسخ اوشوه. إِذِ الْفَسْخُ يَثْبُتُ بِهِ خکه چې په دې سره فسخ ثابتیږی. كَمَا إِذَا تَجَاحَدَا الكه کله چې دواړه انکار اوکړی( نو فسخ ثابتیږی). فَإِذَا عَزَمَ الْبَائِعُ عَلَى تَرْكِ الْخُصُومَةِ تَمَّ الْفَسْخُ نو کله چې بائع دخصومت پرېښولو عزم اوکړو.نو فسخ پوره شوه. |

**حل اللغة:** ① المشتری-اخستونکې-② فسخ-ماتیدل-③ یثبت-ثابتیږی-④ عزم-کلکه اراده

**تشریح:**- دلیل دادې.چه مشتری کله د عقدبیع انکار اوکړو.نود مشتری د اړخه فسخ د بیع ثابت شوه.ځکه چې بیع ځنګه په لفظ فسخ سره فسخ کیږی.دغه ډول په جحود او انکار سره هم فسخ کیږی.ځکه چې د جحود معنی د عقد نه انکار دې.اود فسخ معنی د عقد رفع کاوه او پورته کاوه ده.او په دې دواړه معانو کې مناسبت ښکاره دې.نو هرکله چې په دې دواړه معانوکې مناسبت موجود دې.نو په لفظ جحود اوفسخ کې هر یو د بل په ځائې استعمالول درست دی.لکه مثلاً بائع او مشتری دواړه په یوځائې د عقدبیع انکار نه انکار اوکړی.نودا بالیقین فسخ ده.نوکه مشتری د عقدبیع نه انکار اوکړو.نود مشتری د اړخه به فسخ وی.بهرحال د وینځې دا بیع د مشتری د اړخه فسخ شوې ده.نو کله چې بائع هم د خصومت پرېښولو عزم او پخه اراده اوکړله.نود دواړو د اړخه فسخ پوره شوه.اوکله چې عقدبیع د بائع او مشتری دواړو اړخه فسخ شوه.نود بائع لپاره به په مبیع یعنی وینځه کې تصرف کول حلال او جائز وی.

| |
|---|
| وَمُجَرَّدُ الْعَزْمِ إِنْ كَانَ لَا يَثْبُتُ الْفَسْخُ فَقَدِ اقْتَرَنَ بِالْفِعْلِ او صرف په عزم کاوه سره فسخ اګرچه نه ثابتیږی.خو ( دلته کې) یو فعل سره مقارن شو. وَهُوَ إِمْسَاكُ الْجَارِيَةِ وَنَقْلُهَا وَمَا يُضَاهِيهِ اوهغه وینځه منع کول ( ځان سره ساتل)،او خپل کور ته راوستل دی.او ددې مشابه دی. |

**حل اللغة:** مجرد-صرف-العزم - کلك قصد-امساک-بندول-یضاهی-مشابه

**تشریح:**- خوکه دا اعتراض اوکړې شی.چه صرف په عزم او ارادې سره هیڅ حکم نه ثابتیږی.لکه مثلاً من له شرط الخیار که د فسخ بیع عزم اوکړی.نو صرف په عزم سره عقد نه فسخ کیږی.بلکه په ژبه سره وئیل ضروری دی.نوهم دغه ډول صرف د بائع په عزم سره فسخ نه ثابتیږی.اوهرکله چې د بائع د خصومت د پرېښولو په عزم سره فسخ د بیع نه ثابتیږی.نو بائع لپاره ذکر شوې وینځې سره وطی کول ځنګه حلال دی؟ ددې خواب دادې.چه فسخ د بیع اګرچه صرف په عزم او ارادې سره نه ثابتیږی.خو دلته کې عزم او ارادې سره سره د بائع د اړخه یو فعل هم اوموندې شو.او هغه فعل د بائع وینځه خپل ځان سره ساتل دی.او دا خپل کور ته واپس راوستل دی.او ددې نه خدمت وغیره اخستل دی.اوچونکه د بائع د اړخه دا واړه افعال د فسخ نه بغیر نه موندلې کیږی.په دې وجه دلالة



د بائع د اړخه فسخ اوموندې شوه.او هرکله چې فسخ اوموندې شوه.نود بائع لپاره به دې وینځې سره وطی کول هم حلال او جائز وی.

| |
|---|
| وَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ اسْتِيفَاءُ الثَّمَنِ مِنَ الْمُشْتَرِي اوځکه چې کله د مشتری نه ثمن وصولول متعذر شو. فَاتَ رِضَا الْبَائِعِ نود بائع رضامندی فوت شوه. فَيَسْتَبِدُّ بِفَسْخِهِ او هغه ددې په فسخ کولوکې مستقل دې. |

**حل اللغة:** ① تعذر-ګران\ مشکل-② استیفاء-حاصلول-③ فات-فوت شوه-④ یستبد-مستقل کیږی

**تشریح:**- دوهم دلیل دادې.چه کله مشتری د عقدبیع انکار اوکړو.نود بائع لپاره مشتری نه وینځه وصولول متعذر شو.نود بائع رضامندی فوت شوه.اود بائع رضامندی فوت کیدلو سره چونکه د بیع رکن فوت کیږی.په دې وجه د بائع رضامندی فوت کیدل به موجب د فسخ وی.او کله چې د بائع رضامندی فوت کیدل فسخ واجبوی.نو بائع به ددې عقد په فسخ کاوه کې مستقل وی.په ذکرشوی دواړه دلیلونو کې توپیر دادې.چه د ړومبی دلیل په بنا (بنیاد) باندې د بائع اومشتری دواړو د اړخه فسخ متحقق شوې ده.اود دوهم دلیل په بنا (بنیاد) باندې صرف د بائع د اړخه فسخ متحقق شوې ده.

## د لس درهمو اقرارکونکې لپاره ددې د کوټه کیدلو دعوه کولو حکم

| |
|---|
| وَمَنْ أَقَرَّ أَنَّهُ قَبَضَ مِنْ فُلَانٍ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ اوکوم کس چې اقرار اوکړو.چه د فلانی سړی نه مې لس درهم قبضه کړل. ثُمَّ ادَّعَى أَنَّهَا زُيُوفٌ صُدِّقَ بیا نې دعوه اوکړله.چه هغه کوټه دی.نو ددې تصدیق به کولې شی، وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ اقْتَضَى، وَهُوَ عِبَارَةٌ عَنِ الْقَبْضِ أَيْضًا او په بعض نسخوکې د،،اقتضی،، لفظ دې.اودا هم د قبضې نه عبارت دې. |

**حل اللغة:** ① اقر-اقرار اوکړو-② قبض-وصول کړو-③ زیوف-کوټه-④ دراهم-روپۍ

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی دا اقرار اوکړو.چه ما د فلانی سړی نه د خپل پور یا ثمن په لس درهمو باندې قبضه کړې ده.بیا نې موصولاً یا مفصولاً دا دعوه اوکړله.چه په کومو ما قبضه کړې ده.هغه دراهم کوټه دی.نو ددې مقر قول به مع الیمین معتبر وی.د جامع صغیر په بعض نسخوکې د لفظ «قبض» په ځائې لفظ د «اقتضی» ذکر دې.دلته کې د دواړو یو معنی ده.

| |
|---|
| وَوَجْهُهُ أَنَّ الزُّيُوفَ مِنْ جِنْسِ الدَّرَاهِمِ او ددې وجه داده.چه زیوف هم د دراهمو جنس دې. إِلَّا أَنَّهَا مَعِيبَةٌ،مګر دا عیب دار دی. وَلِهَذَا لَوْ تَجَوَّزَ بِهِ فِي الصَّرْفِ وَالسَّلَمِ جَازَ اوهم په دې وجه که په عقد سرف او سلم کې په کوټه دراهمو اخستلوکې بې پرواهی اوکړې شوه.نو جائز ده. |

**حل اللغة:** ① الزیوف-کوټه روپۍ-② الداړهم-روپۍ-③ معیبة-عیبژن-④ تجوز-جائز کیږی

**تشریح:**- ددې دلیل دادې.چه زیوف( کوټه) دراهم د دراهمو یو جنس دې.یعنی کوټه دراهم، هم دراهم دی.صرف دومره خبره ده.چه کوټه دراهم عیب دار دراهم دی.کوټه دراهم د دراهمو جنس کیدلو باندې دلیل دادې.چه په بیع صرف او بیع سلم کې عوضینو باندې قبضه کاوه نه وړاندې استبدال جائز نه دې.یعنی په بیع صرف کې په یوعوض باندې قبضه کولونه وړاندې او په بیع سلم کې په راس المال باندې قبضه کاوه نه وړاندې ددې په عوض بل څه شئ اخستل جائز نه دی.حالانکه په بیع صرف کې که یو عاقد د کره دراهمو په ځائې خپل انډیوالان ( دوهم عاقد) ته کوټه دراهم ورکړل.او ده بې پرواهی اوکړله.اودا نې قبول کړلې.نو جائز دی.ددې نه معلومه شوه.چه کوټه دراهم هم دراهم دی.ګنی که کوټه دراهم دراهم نه وو.بلکه څه شئ وو.نو په دراهم یعنی بدل صرف باندې قبضه کولونه وړاندې به استبدال لازمیدلو.او په بیع صرف کې د قبضه نه وړاندې استبدال چونکه ناجائز دې.په دې وجه د کره دراهمو په ځائې کوټه دراهم اداکول، او بې پرواهی کول،او ددې قبلول جائز کیدل ددې خبرې علامت دې.چه کوټه دراهم هم دراهم دی.دغه ډول په عقدسلم کې مثلاً د پنځوس درهمو په عوض نې لس منه غنم مقررکړل.بیا رب السلم راس المال ته پنځوس درهمه کوټه ورکړل.او مسلم الیه بې پرواهی اوکړله.او قبول نې کړل.نو جائز دی.ددې نه هم معلومه شوه.چه کوټه دراهم، دراهم دی.ګنی که کوټه دراهم، دراهم نه وو.بلکه بل څه

شئ وو. نودا به جائز نه وو. ځکه چې په راس المال باندې د قبضه کاوه نه وړاندې ددې په بدله کې د دوهم شئ اخستل ناجائز دی.

| |
|---|
| وَالْقَبْضُ لَا يَخْتَصُّ بِالْجِيَادِ فَيُصَدَّقُ او قبضه كول كره دراهمو سره خاص نه دی. نو دده د قول تصديق به كولې شي. لِأَنَّهُ أَنْكَرَ قَبْضَ حَقِّهِ ځکه چې ده پخپل حق باندې د قبضه کاوه نه انکار کړې دې. |

حل اللغة: ① القبض- وصولی- ② يختص- خاص كيږی- ③ الجياد- كره روپۍ- ④ يصدق- تصديق كولې شي

تشريح:- په دې عبارت سره د يو سوال ځواب دې. سوال دادې چه كله مقر په لس درهمو باندې د قبضه اقرار اوكړو. نو ګويا ده پخپل حق باندې د قبضې اقرار كړې دې. ځكه چې د قبضې اقرار پخپل حق باندې د قبضې اقرار ته مستلزم وی. او دده حق په كره دراهمو كې وو. نود مقر په مطلق دراهمو باندې د قبضې اقرار ته مستلزم شو. يعنى ګويا مقر په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار كړې دې. او كله چې مقر په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار اوكړو. نو اوس ددې نه روسته دا دعوه كول (چې دا دراهم كوټه دی) به د مقر په قول كې تناقض وی. اود تناقض په صورت كې چونكه دعوه قابل د سماعت نه وی. په دې وجه د مقر دا دعوه كول، چه دا دراهم كوټه دی. قابل سماعت پكار نه وه؟

ځواب ددې ځواب دادې. چه قبضه كره دراهمو سره نه مخصوص كيږی. بلكه په كره او كوټه دراهمو كې متحقق كيږی. كه يو كس داسې اووئيل. چه ما په لس درهمو باندې قبضه اوكړله. نودا قبضه به په كره دراهمو او كوټه دراهمو دواړو باندې صادقيږی. يعنى داهم كيداې شي. چه هغه لس درهمه كره وی. اودا هم كيداې شي. چه هغه لس درهمه كره وی. نو هركله چې قبضه كره دراهمو سره مخصوص نه ده. نو په لس درهمو باندې د قبضه اقرار به په كره باندې د قبضې اقرار ته مستلزم نه وی. اوهركله چې په لس درهمو باندې د قبضه اقرار په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار ته مستلزم نه دې. نود قبضه نه روسته ددې د كوټه كيدلو دعوه كاوه سره به د مقر په قول كې تناقض نه وی. بلكه مقر به پخپل حق باندې د قبضې منكر وی. اود منكر قول مع اليمين معتبر وی. نو په لس درهمو باندې د قبضې اقرار كونكې چونكه پخپل حق باندې د قبضې منكردې په دې وجه به دده قول معتبر وی. اوهم دده تصديق به كولې شي.

| |
|---|
| بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ أَنَّهُ قَبَضَ الْجِيَادَ أَوْ حَقَّهُ أَوِ الثَّمَنَ په خلاف ددې كله چې ده په كره دراهمو باندې د قبضه كولو، يا پخپل حق باندې د قبضه كولو، يا په ثمن باندې د قبضه كاوه اقرار اوكړو. أَوِ اسْتَوْفَى لِإِقْرَارِهِ بِقَبْضِ الْجِيَادِ صَرِيحًا أَوْ دَلَالَةً فَلَا يُصَدَّقُ يا (ده اقرار اوكړو) چې ما پوره طور باندې وصول كړی دی. ځكه چې ده په كره دراهمو باندې د قبضه كاوه صراحة يا دلالة اقرار كړې دې. نو دده تصديق به نشي كولې. |

حل اللغة: ① الجياد- كره- ② الثمن- قيمت- ③ استوفى- پوره وصول كړې- ④ صريح- ښكاره

تشريح:- خو كه يو كس دا اقرار اوكړو. چه ما په كره لس درهمو باندې قبضه كړې ده. يا پخپل حق مې قبضه كړې ده. يا په ثمن مې قبضه كړې ده. يا په پوره طور وصول كړی دی. نو اوس كه دا سړې ددې دراهمو د كوټه كيدلو دعوه كوی. نو دده تصديق به نشي كيدلې. يعنى دده د زيافت (كوټه كيدلو) دعوه به قابل سماعت نه وی. ځكه چې دا سړې صراحتاً يا د لالة په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار كړې دې. په ړومبی صورت كې په دراهم جياد باندې د قبضې اقرار صراحتاً ثابت دې. او په دوهم صورت كې ځكه چې ده وئيلی دی. چه ما پخپل حق باندې قبضه كړې ده. او دده حق په كره (دراهمو) كې دې. نو پخپل حق باندې د قبضې اقرار كول په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار كول دی. او دغه ډول كله چې ده اووئيل چه ما خپل ثمن وصول كړې دې. ځكه چې ثمن هم كره دراهم وی. كوټه دراهم نه وی. نو په ثمن باندې د قبضې اقرار كول داسې دی لكه په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار كول. دغه ډول كله چې ده لفظ د «استوفی» اووئيل. يعنى ما پوره طور باندې وصول كړل. نو بيا به هم په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار وی. ځكه چې پوره طور باندې وصولول هغه وخت متحقق كيږی. كله چې په وصف تام سره قبضه شوې وی. او وصف تام جودت (كره والې) دې. زيافت (كوټه والې) نه دې. نو معلومه شوه. چه په دې صورت كې هم



مقر په دراهم جياد (كره دراهمو) باندې د قبضې اقرار كړې دې. نو كله چې په ذكرشوی صورتونو كې صراحة يا دلالة په كره دراهمو باندې د قبضې اقرار اوكړې شو. نو اوس ددې نه روسته د كوټه كيدلو دعوه كول به دده په قول كې تناقض پيدا كوی. اود تناقض په صورت كې دعوه قابل سماعت نه وی. په دې وجه ذكرشوی صورتونو كې به هم د مقر د كوټه كيدلو دعوه قابل سماعت او معتبر نه وی.

| |
|---|
| وَالنَّبَهْرَجَةُ كَالزُّيُوفِ او بنهره دراهم د كوټه دراهمو پشان دی. |

حل اللغة: ① النبهرجة- كوم دراهم چې سوداګر رد كوی- ② الزيوف- كوم دراهم چې بيت المال كوټه كړی او ردی كړی وی- ③ ستوقة- كوم دراهمو كې چې كهوټ غالب وی

تشريح:- علامه مرغينانی ؒ فرمائی. چه بنهره درهم، د كوټه دراهمو پشان دی. يعنى كه يو كس اووئيل. چه ما د فلانی نه په لس درهمو باندې قبضه كړې ده. او بيا ئې دعوه اوكړله. چه هغه دراهم بنهره دی. نو دده تصديق به كولې شي. لكه څنګه چې كوټه دعوه كولو په صورت كې تصديق كولې شي. حاصل داچه لكه څنګه كوټه دراهم د دراهمو جنس دې. دغه ډول دراهم بنهره هم د دراهمو جنس دې.

| |
|---|
| وَفِي السَّتُّوقَةِ لَا يُصَدَّقُ لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ الدَّرَاهِمِ اود ستوقه په صورت كې به تصديق نه كيږی. ځكه چې ستوقه د دراهمو د جنس څخې نه دې. حَتَّى لَوْ تَجَوَّزَ بِهِ فِيمَا ذَكَرْنَا لَا يَجُوزُ تردې كه په عقدصرف او سلم كې ستوقه دراهمو اخستلو باندې بې پرواهی اوكړی. نو جائز به نه وی. |

تشريح:- خو كه په دراهمو باندې د قبضې اقرار نه روسته ئې ددې د ستوقه كيدلو دعوه اوكړله. نودا دعوه به مقبول نه وی. ځكه چې ستوقه دراهم د دراهمو جنس نه دې. هم دا وجه ده. كه د قبضه نه وړاندې د هغه دراهمو په بدله كې كوم چې بدل صرف يا راس المال دې. دراهم ستوقه وركړل. نو جائز نه دی. ځكه چې دراهم ستوقه د دراهمو جنس نه دی. په دې وجه د قبضه نه وړاندې بدل صرف اود راس المال په عوض د ستوقه دراهمو اخستل ناجائز دی.

| |
|---|
| وَالزَّيْفُ مَا زَيَّفَهُ بَيْتُ الْمَالِ، او ،، زيف،، هغه درهم ته وائی. كوم چې بيت المال كوټه كړی. او ردئې كړی. وَالنَّبَهْرَجَةُ مَا يَرُدُّهُ التُّجَّارُ، او ،،بنهره،، هغه درهم كوم چې تاجر (او سوداګر) خلګ رد كوی. وَالسَّتُّوقَةُ مَا يَغْلِبُ عَلَيْهِ الْغِشُّ او ستوقه هغه دراهم دی په كوم چې كهوټ غالب وی. |

تشريح:- علامه مرغينانی ؒ د زيوف (كوټه) وغيره تفسير كاوه كې فرمائی. چه زيوف هغه دراهم دی. كوم چې بيت المال كوټه اوګرځوی. او رد ئې كړی. خو تاجر (اوسوداګر) خلګ ئې پخپلو معاملاتو كې اخلی. او بنهرجه (بنهره) هغه دراهم دی. كوم چې سوداګر خلګ هم ردكوی. ګويا بنهرجه د كوټه نه هم ادنی دی. خو بيا هم دراهم دی. او ستوقه هغه دراهمو ته وائی. چه په دې كې كوټ غالب او سپين زر مغلوب وی. ګويا دا د سره درهم هم نه دی.

### د مقر اقرار كول اود مقرله انكار كولونه روسته په مقرله د دعوه كولو حكم

| |
|---|
| قَالَ وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ لَكَ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ او كه يو كس بل سړی ته اووئيل. چه ستا لپاره په ما باندې يو زر درهم دی. فَقَالَ لَيْسَ لِي عَلَيْكَ شَيْءٌ نو هغه اووئيل. چه زما لپاره په تا باندې هيڅ نشته. ثُمَّ قَالَ فِي مَكَانِهِ بَلْ لِي عَلَيْكَ أَلْفُ دِرْهَمٍ بيا ړومبی سړی هم دلته كې اووئيل. بلكه زما لپاره په تا باندې يو زر دی. فَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو په ده به هيڅ واجب نه وی. |

تشريح:- صورت د مسئلې دادې. چه يو سړی مثلاً خالد دوهم كس مثلاً حامد ته اووئيل چه ستا په ما باندې زر درهم دی. نو مقرله يعنى حامد اووئيل. چه زما په تا باندې هيڅ نشته. بيا هم دلته كې مقر يعنى خالد اووئيل. بلكه په تا باندې زر درهم دی. نو په مقر يعنى خالد باندې به هيڅ واجب نه وی.

| |
|---|
| لِأَنَّ إِقْرَارَهُ هُوَ الْأَوَّلُ وَقَدِ ارْتَدَّ بِرَدِّ الْمُقَرِّ لَهُ، دليل دا دې چې دده اقرار ړومبې دې. او هغه د مقرله په رد كاوه سره ردشو. وَالثَّانِي دَعْوَى فَلَا بُدَّ مِنَ الْحُجَّةِ أَوْ تَصْدِيقِ خَصْمِهِ او دويمه دعوه ده. نود حجت كيدل يا دده د خصم تصديق كيدل |

ضروري دی

تشریح:- دلیل دادي.چه د مقر یعنی خالد د اړخه دوې (دوه) خبرې اوموندې شوې.یود مقرله یعنی حامد لپاره د زر درهمو اقرار، دوهم په حامد باندې د زر درهمو دعوه.اول یعنی د زر درهمو اقرار دمقرله یعنی حامد په رد سره ردشوې دې.ځکه چې اقراربالدین اودغه ډول اقرار بالعین د مقرله په رد کاوه سره ردکیږي. نوهرکله چې د خالد د اړخه د زر درهمو اقرار دحامد په رد کاوه سره رد شو.نو په مقریعنی خالد باندې به هیڅ واجب نه وی. نوکه د ردکولونه روسته مقرله د مقر تصدیق اوکړو.نو دده تصدیق به معتبر نه وی.خوکه مقرله د مقر د اقرار تصدیق اوکړی.او بیا دا اقرار ردکړی.نو اوس به دا اقرار نه وی.او پاتې شو دوهم یعنی د خالد په حامد باندې د زر درهمو دعوه،نو ددې د ثابتولو لپاره به یا خالد بینه پیش کوی.یا به خصم یعنی حامد ددې تصدیق کوی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ اشْتَرَيْتَ وَأَنْكَرَ الْآخَرُ لَهُ أَنْ يُصَدِّقَهُ په خلاف ددې کله چې ده بل ته اوونیل.چه تا واخستل.او دوهم انکار اوکړو.نو بیا هم ده ته اختیار دې.چه د مشتری د قول تصدیق اوکړی.

تشریح:- ددې په خلاف که خالد حامد ته اوونیل.چه تا زما نه دا غلام اخستې دې.اوحامد انکار اوکړو.نود انکار نه روسته هم که حامد د خالد دقول تصدیق اوکړی.نودا تصدیق کول به ټیک او معتبر وی.نود اقراربالدین او اقراربالبیع مسئلو په منځ کې توپیر داشو.چه اقراربالدین د مقرله په رد کاوه سره ردکیږي.او اقرار بالبیع د مقرله په رد کاوه سره نه ردکیږي.

لِأَنَّ أَحَدَ الْمُتَعَاقِدَيْنِ لَا يَتَفَرَّدُ بِالْفَسْخِ دلیل دا دې چې احدالعاقدین یواځې نشی فسخ کولې. كَمَا لَا يَتَفَرَّدُ بِالْعَقْدِ لکه ځنګه چې دې یواځې عقد نشی کولې. وَالْمَعْنَى أَنَّهُ حَقُّهُمَا فَبَقِيَ الْعَقْدُ او راز هم په دې کې دې.چه فسخ ددې دواړو حق دې.نو عقد [illegible] دی [illegible] التَّصْدِيقُ،او په تصدیق به عمل کولې شی. أَمَّا الْمُقَرُّ لَهُ يَتَفَرَّدُ بِرَدِّ الْإِقْرَارِ فَافْتَرَقَا او پاتې شو مقرله،نو دې یواځې اقرار رد کولې شی.نو په دواړه خبرو کې توپیر ښکاره شو.

حل اللغة: ① يتفرد-خانله کیږی-② المتعاقدين-تثنیه د عاقد-③ الفسخ-ماتیدل-④ التصديق-تصدیق کول

تشریح:- او وجه د توپیر داده.چه احدالعاقدین ځنګه خانله عقدبیع نشی منعقدکولې.دغه ډول خانله دا فسخ کولې هم نشی.ځکه چې فسخ د دواړه عاقدانو حق دې.نود مقرله یعنی د حامد په رد کاوه سره به عقدبیع نه فسخ کیږی.اوهرکله چې د حامد د رد کاوه باوجود عقدبیع پاته شو.نود رد کاوه نه روسته به د حامد تصدیق ګټور او کارآمد وی.اوهرکله چې دحامد تصدیق ګټور او کارآمد دې.نو دده د تصدیق اعتبار به هم کولې شی.او پاتې شو د اقرار بالدین مسئله،نو اقرار بالدین مقرله جلا کولې شی.اوهرکله چې مقرله جلا اقراربالدین رد کولې شی.نو دده د رد کاوه نه روسته اقراربالدین پاته نشو.او هرکله چې اقراربالدین پاته نشو.نود رد کاوه نه روسته د مقرله تصدیق کول به هم معتبر نه وی.زموږ په ذکرشوی تقریر سره د اقراربالدین او اقراربالبیع دواړو مسئلو په منځ کې توپیر ښکاره شو.

### د مدعی په دعوی کولو اود مدعی علیه په اداکولو باندې د بینه قائمولو حکم

قَالَ وَمَنْ ادَّعَى عَلَى آخَرَ مَالًا وکه یوسړی په بل باندې د مال دعوه اوکړله. فَقَالَ مَا كَانَ لَكَ عَلَيَّ شَيْءٌ قَطُّ نو مدعی علیه اوونیل.چه ستا په ما باندې هیڅ نه وو. فَأَقَامَ الْمُدَّعِي الْبَيِّنَةَ عَلَى أَلْفٍ نو مدعی په یو زر باندې بینه قائم کړل. وَأَقَامَ هُوَ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْقَضَاءِ قُبِلَتْ بَيِّنَتُهُ و مدعی علیه په ادا کاوه باندې بینه قائم کړل. وَكَذَلِكَ عَلَى الْإِبْرَاءِ نود مدعی علیه بینه به قبول وی.اوهم دغه ډول په بری کاوه باندې،

حل اللغة: ① قط-هیڅ نه-② البينة-ګواهان-③ الابراء-بری کول-④ الف-زر روپۍ

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی په بل باندې د مال دعوه اوکړله.نو مدعی علیه اوونیل.چه ستا په ما باندې کله هم څه نه وو.یعنی مدعی علیه په زمانه ماضی کې علی‌سبیل الاستغراق دوجوب مال نفی کړې ده.نو



مدعی پخپله دعوه باندې بینه پیش کړل.او مدعی علیه په دې خبره باندې بینه پیش کړل.چه ما اداکړې دې.یا مدعی زه بری کړې یم.نود مدعی علیه بینه به قبول وی.

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا تُقْبَلُ لِأَنَّ الْقَضَاءَ يَتْلُو الْوُجُوبَ او امام زفر رحمه الله فرمائی.چه د مدعی علیه بینه نه قبلیږی. وَقَدْ أَنْكَرَهُ فَيَكُونُ مُنَاقِضًا ځکه چې اداکول د وجوب نه روسته کیږی.حالانکه هغه د وجوب نه انکار کړې دې.نو هغه به مناقض وی.

حل اللغة: ① لاتقبل-نشی قبلولې-② يتلو-نزدې-③ استوفى-پوره وصول کړې-④ صريح-ښکاره

تشریح:- او امام زفر او ابن ابی‌لیلی رحمهما الله فرمائی.چه د مدعی علیه بینه به نه قبلیږی.د امام زفر او ابن ابی لیلی رحمهما الله دلیل دادې.چه ادانیګی د وجوب نه روسته کیږی.نو په ادا کاوه یا بری کاوه باندې بینه پیش کول، ددې خبرې علامت دې.چه مدعی علیه د وجوب مال اقرار کوی.حالانکه ده ددې نه وړاندې د وجوب مال انکار کړې دې.نود مدعی علیه په دعوه کې تناقض شو.او په دعوه کې تناقض دعوه فاسدوی.په دې وجه به د مدعی علیه د دین ادا کاوه یاد مدعی د بری کاوه دعوه فاسد وی.او بینه هم هغه قبلیږی.کوم چې په صحیح دعوه باندې وی.په فاسد دعوه باندې چې کوم بینه پیش شوی وی.هغه نشی قبلولې.په دې وجه په دین ادا کاوه یا ابراء باندې به د مدعی علیه بینه نشی قبلولې.اوکله چې د مدعی علیه بینه قبول نه وی.نو په وجوب دین باندې به د مدعی بینه قبول وی.

وَلَنَا أَنَّ التَّوْفِيقَ مُمْكِنٌ او زموږ دلیل دادې.چه توفیق ممکن دې. لِأَنَّ غَيْرَ الْحَقِّ قَدْ يُقْضَى وَيُبْرَأُ مِنْهُ دَفْعًا لِلْخُصُومَةِ ځکه چې کله د خصومت دفع کاوه لپاره د غیرحق هم اداکولې شی.او ددې نه براءة کولې شی.

حل اللغة: ① توفيق-موافقت-يقضى-ادا کولې شی-دفعا- لپاره د دفع کولو-يبرا-بری کیږی

تشریح:- دلیل دادې.چه د مدعی علیه د وجوب مال نه انکار اود مال ادا کاوه په دعووکې توفیق ورکول ممکن دې.ځکه به هیڅ تناقض نه وی.او توفیق ځکه ممکن دې.چه کله کله د جګړې لرې کاوه لپاره ناحق مال هم اداکولې شی.او ددې نه براءت حاصلولې شی.تردې وئیلې شی.چه «قضى بباطل» لکه چې «قضى بحق» وئیلې شی.ددې نه معلومه شوه.چه اداکول ځنګه په جائز او حق طریقه باندې کولې شی.دغه ډول په ناجائز او ناحق طور باندې هم کیږی.دغه ډول که مدعی علیه د چا د حق انکار اوکړی. بیا مدعی سره په څه ورکړه راکړه باندې صلح اوکړی.نودا به حق ثابت وی.او ادابه وی.یعنی دا حق مخکې په ناحق طریقه باندې ثابت شو.او بیا دا اداکړې شو.

وَالشَّغَبِ، أَلَا تَرَى أَنَّهُ يُقَالُ قَضَى بِبَاطِلٍ آیا ته نه ګورې چې دا وئیلې شی.چه ده ناحق اداکړو. وَقَدْ يُصَالَحُ عَلَى شَيْءٍ او کله په یوڅیز باندې صلح کولې شی. فَيَثْبُتُ ثُمَّ يُقْضَى نودا شی ثابتولې او اداکولې شی.

تشریح:- ددې نه هم معلومه شوه.چه کله د مال اداکول په ناحق طور باندې هم کیږی.نود مدعی علیه دا وئیل.چه ستا په ما باندې کله هم څه نه وو.ددې مطلب دادې.چه په جائز او حق طور باندې په ما باندې کله هم څه واجب نه وو.اود مدعی علیه د ادا کاوه د دعوې مطلب دادې.چه ستا په ما باندې اګرچه څه واجب نه وو.خوما د جګړې نه د بچ کاوه لپاره دوجوب نه بغیر ناحق طور باندې دومره مال اداکړې دې.دکوم چې ته مدعی یې.تاسو اوګورئ.د مدعی علیه په دې دعوه کې څومره تناقض دې.یعنی هیڅ تناقض نشته.نوهرکله چې د مدعی علیه په دعوه کې هیڅ تناقض نشته.نود مدعی علیه د اړخه به د مال ادا کاوه یا بری کاوه دعوه به هم صحیح وی.اوهرکله چې د مدعی علیه دعوه صحیح ده.نو په دې باندې قائم شوی بینه به هم قبلولې شی.

وَكَذَا إِذَا قَالَ لَيْسَ لَكَ عَلَيَّ شَيْءٌ قَطُّ او هم دغه ډول کله چې اوواٸی.چه ستا په ما باندې هیڅ چرې هیڅ هم نه دی. لِأَنَّ التَّوْفِيقَ أَظْهَرُ ځکه چې توفیق ښکاره دې.

تشریح:- دغه ډول که یو سړی په بل باندې د مال دعوه اوکړله.او مدعی علیه انکار اوکړو.یعنی داٸې اوونیل.چه ستا په ما باندې هرګز څه نشته.بیا مدعی پخپله دعوه باندې او مدعی علیه په مال ادا کاوه باندې بینه پیش

کړل.نو بيا به هم د مدعى عليه بينه قبول وى.ځکه چې په دې صورت کې د مدعى عليه په قول کې توفيق زيات ښکاره دی.په دې طريقه چې په «ليس لك على شئ قط» کې لفظ د ،،ليس،، د حال نفى لپاره دی.يعنى مدعى عليه وائى.چه په زمانه موجوده کې د مدعى په ما باندې هرګز څه واجب نه دی.او ده بينه په دې خبره باندې قائم کړل.چه مدعى عليه د زمانه موجوده نه وړاندې اداکړې دی.يا مدعى د زمانه حال نه مخکې دې برى کړې دی.نو کله چې د ادا کاوه يا ابراء دعوه د زمانه حال نه وړاندې ده.او د مال د وجوب نفى په زمانه حال کې ده.نود مدعى عليه په قول کې به تناقض نه وى.او هرکله چې تناقض نشته.نود مدعى عليه د اړخه په مال باندې پيش کړې شوى بينه به هم قبلولې شى.

## د مدعى عليه په اداکولو يا برى کولو باندې د بينه پيش کولو حکم

وَلَوْقَالَ مَاكَانَ لَكَ عَلَىَّ شَئْ قَطُّ او که ده دا اووئيل.چه ستا په ما باندې کله هم څه نه وو. وَلَا أَعْرِفُكَ لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَتُهُ عَلَى الْقَضَاءِ اونه زه تا پيژنم.نو دده بينه به قبول نه وى. وَكَذَا عَلَى الْإِبْرَاءِ لِتَعَذُّرِ التَّوْفِيقِ اوهم دغه ډول په برى کاوه باندې،ځکه چې توفيق ورکول متعذر دى.

تشريح:- ماتن رحمه الله فرمائى.که يو سړى په بل باندې د مال دعوه اوکړله.او دوهم سړى يعنى مدعى عليه په دې الفاظو سره انکار اوکړو.چه ستا په ما باندې هيڅ نه وو.اونه زه تا پيژنم.بيا مدعى په خپله دعوه باندې بينه پيش کړل.او مدعى عليه په مال ادا کاوه باندې ياد مدعى په برى کاوه باندې بينه پيش کړل.نود مدعى عليه په ادا کاوه يا برى کاوه باندې به بينه قبول نه وى.

لِأَنَّهُ لَا يَكُونُ بَيْنَ اثْنَيْنِ أَخْذٌ وَإِعْطَاءٌ وَقَضَاءٌ وَاقْتِضَاءٌ وَمُعَامَلَةٌ بِدُوْنِ الْمَعْرِفَةِ دليل دا دې چې د دوې (دوه) سړو په منځ کې لين دين،ادا کول او وصولول، معامله او مصالحت کول د معرفت (پيژندلو) نه بغير نه کيږى.

حل اللغة: ① اثنين-دوه-② اخذ-اخستل-③ اعطاء-ورکول-④ قضاء-فيصله ⑤ اقتضاء-وصول کول-⑥ معاملة-معامله -⑦ مصالحة-مصالحت -⑧ دون-بغير

تشريح:- دليل دا دې چې په دې صورت کې د مدعى عليه په قول کې داسې تناقض دې.چه ددې رفع کول اود دواړه قولونو په منځ کې توفيق ورکول ناممکن او متعذر دې.او متعذر ځکه دې.چه کله مدعى عليه مال دين اداکړې وى.نود مدعى د اړخه اخستل اود مدعى عليه د اړخه ورکول،د مدعى د اړخه وصول کول،اود مدعى عليه د اړخه اداکول اوموندې شو.غرض داچه د دواړو په منځ کې يوه معامله او صلح اوشوه.اود دوې (دوه) سړو په منځ کې د معرفت (او پيژندګلو) نه بغير اخستل ،ورکول، اداکول او وصولول، معامله او صلح نشى کيدلې.نود مدعى عليه د «لا اعرفك» وئيلو نه روسته د ادا کاوه دعوه کول غلط دى.اوهرکله چې د ادا کاوه دعوه کول غلط دى.نود مدعى عليه پيش شوى بينه به هم قبول نه وى.حاصل داچه لکه څنګه په رومبى دواړه صورتونو کې توفيق ورکول ممکن وو.دلته کې ممکن نه دې.

وَذَكَرَ الْقُدُورِيُّ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ تُقْبَلُ أَيْضًا او ابو الحسين قدورى رحمه الله ذکر کړى دى.چه دده بينه به قبلولې شى. لِأَنَّ الْمُحْتَجِبَ أَوِ الْمُخَدَّرَةَ قَدْ يُؤْذَى بِالشَّغَبِ عَلَى بَابِهِ ځکه چې محتجب (اختلاط نه کونکې سړې) يا پرده نشينه ښځه کله پخپله دروازه باندې د شور (اوچغو سورو) نه تکليف بيا مومى. فَيَأْمُرُ بَعْضَ وُكَلَائِهِ بِإِرْضَائِهِ نو خپلو بعضو وکيلانو ته حکم ورکوى چه دوى شورکونکې راضى کړى. وَلَا يَعْرِفُهُ ثُمَّ يَعْرِفُهُ بَعْدَ ذٰلِكَ فَأَمْكَنَ التَّوْفِيقُ حالانکه هغه پخپله دې نه پيژنى.بيا ددې نه روسته هغه اوپيژنى.نو توفيق ورکول ممکن دى.

حل اللغة: ① المحتجب-اختلاط نه کونکې کس -② المخدرة-پرده نشينه ښځه-③ يوذى-تکليف ورته رسى-④ الشعب-شورشغب

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه شيخ ابوالحسن قدورى رحمه الله ذکرکړى دى.چه په دې صورت کې د مدعى [illegible]بينه قبلولې شى.ځکه چې په دې صورت کې هم توفيق ورکول ممکن دى.په دې طريقه چې مدعى عليه داسې



سړې وى.چه دده د عزيمت په وجه خلک دې نشى کتلې.او دې پخپله هم خلکو سره اختلاط نه خوښوى.يا مدعى عليه پرده ناکه ښځه وى.اوس مدعى هره ورځ د مدعى عليه په دروازه کې شور او چغې وهى.اود خپل دين تقاضا کوى.په دې ناجائزه حرکت سره شريف کور والا ته تکليف رسول يو لازمى امر دې.نو مدعى عليه ددې مصيبت نه د خلاصى موندلو لپاره خپل يو وکيل ته حکم اوکړو.چه ده ته مال ورکړى.او دې خوشحاله کړى.اود دروازې نه ئې اوشړى.حالانکه په مدعى عليه باندې هيڅ واجب نه وو.او مدعى عليه دې پيژندلو هم نه.نو کله چې مدعى دعوه اوکړله.اووې وئيل.چه زه هم هغه شور کونکې يم.نو وې پيژندلو.ددې تقرير نه روسته دا خبره ممکن ده.چه مدعى عليه مخکې دا اووائى.چه ستا په ماباندې هيڅ نه وو.او زه تا پيژنم هم نه.او بيا د ادا کاوه دعوه اوکړى.ځکه چې د ذکرشوى تقرير په رڼاکې دا دواړه خبرې جمع کيداې شى.نو هرکله چې توفيق ورکول ممکن دې.نود مدعى عليه په دعوه کې هيڅ تناقض پاتې نشو.او کله چې د مدعى عليه په دعوه کې هيڅ تناقض پاتې نشو.نود مدعى عليه د ادا کاوه دعوه او په دې باندې بينه به باليقين قبلولې شى.

## د بائع (مدعى عليه) د عيب نه برى کيدلو باندې بينه پيش کولو حکم

قَالَ وَمَنِ ادَّعٰى عَلٰى آخَرَ أَنَّهُ بَاعَهُ جَارِيَتَهُ (امام محمد رحمه الله په جامع صغيرکى) فرمائى.چه يوسړى په بل باندې دعوه اوکړله.چه ده خپله وينځه په ما باندې خرڅه کړې ده. فَقَالَ لَمْ أَبِعْهَا مِنْكَ قَطُّ نو مدعى عليه اووئيل.چه ما په تا باندې هيڅ چرې نه ده خرڅه کړې. فَأَقَامَ الْمُشْتَرِيْ الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ بيا مدعى په اخستلو باندې بينه پيش کړل. فَوَجَدَ بِهَا أُصْبُعًا زَائِدَةً بيا ده په وينځه کې يوه زياتى ګوته اوکتله. فَأَقَامَ الْبَائِعُ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ بَرِئَ إِلَيْهِ مِنْ كُلِّ عَيْبٍ بيا بائع (مدعى عليه) بينه پيش کړل.چه بائع ددې دهر عيب نه برى دې. لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَةُ الْبَائِعِ[1] نود بائع (مدعى عليه) بينه به نه قبليږى.

حل اللغة: ① جارية -وينځه-اصبع-ګوته-عيب-نقصان-الشراء-اخستل

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړى په بل باندې دعوه اوکړله.چه ده دا خپله وينځه په ما باندې خرڅه کړې ده.مدعى عليه د بيع انکار اوکړو.او وې وئيل.چه ما دا وينځه ستا په لاس کله هم نه ده خرڅه کړې.نو مدعى د مدعى عليه نه ددې وينځې په اخستلو باندې بينه قائم کړل.او په دې وينځه باندې ئې قبضه اوکړله.د قبضه کولونه روسته اخستونکې مدعى په داسې عيب باندې خبرشو.چه ددې مدعى عليه يعنى د بائع په قبضه کې پيداکيدل يقينى دى.مثلاً د وينځې په لاس کې يوه زياتى ګوته په نظر راغله.چه عيب دې.نو مدعى د خيارعيب لاندې ددې وينځې واپس کاوه اراده اوکړله.نو مدعى عليه يعنى بائع په دې خبره باندې بينه پيش کړل.چه ما مدعى يعنى مشترى سره د هرعيب نه د برى کيدلوشرط کړې وو.نو ددې شرط مطابق د هر عيب نه برى يم.نود مدعى عليه (بائع) دا بينه به نه قبليږى.

وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهَا تُقْبَلُ اعْتِبَارًا بِمَا ذَكَرْنَا اود امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى.چه په ذکر شوو مسئلو باندې قياس کاوه سره به دده بينه هم قبلولې شى.

تشريح:- د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دادې.چه په دې صورت کې به هم د مدعى عليه (بائع) بينه قبول وى. دليل دادې.چه امام ابويوسف رحمه الله د بيع دا مسئله د دين په تيرو شوومسئلو باندې قياس کوى.يعنى لکه څنګه چې په تيرو شوومسئلوکې د مدعى عليه په اقوالوکې د توفيق ممکن کيدلو په وجه دده بينه قبلولې شى.دغه ډول په دې مسئله کې هم د توفيق ممکن کيدلو په وجه به دده بينه قبلولې شى.په دې مسئله کې توفيق داسې ممکن دې.چه کله مدعى عليه اووئيل.چه ما دا وينځه دده په لاس نه ده خرڅه کړې.نو ددې مطلب دادې.چه

[1] القول الراجح هو هذا ظاهر الرواية كذا فى فتح القدير (۴۲۳۱۶) وردالمحتار (۴۰۵۱۴) والبحر الرائق (۳۶۱۶) نقلاً عن القول الراجح (۱۱۹۱۲)_

زما او دده په منځ كي بيع نه ده شوې.خو كله چې مدعى د بيع دعوه اوكړله.نو ما دده نه درخواست اوكړو.چه ما د وينځې د هرعيب نه برى كړه.نو ده زما دا درخواست قبول كړو.او زه ئې د وينځې د هرعيب نه برى كړم.ګويا مدعى عليه د دعوه كاوه نه وړاندې زمانه كي د بيع انكار اوكړو.اود دعوې په وخت ئې د بيع اقرار اوكړو.نو په دې دواړه خبروكي به څه تناقض نه وي.اوكله چې د مدعى عليه په دعوه كي څه تناقض نشته.نو دده بينه قبلولوكي به هم څه باك نه وي.

**وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ شَرْطَ الْبَرَاءَةِ تَغْيِيرٌ لِلْعَقْدِ مِنْ اقْتِضَاءِ وَصْفِ السَّلَامَةِ إِلَى غَيْرِهِ** اود ظاهرالرواية وجه داده.چه د براءت شرط كول عقد د وصف سلامت د اقتضاء نه غيرسلامت وصف اړخ ته متغير كول وي. **فَيَسْتَدْعِي وُجُودَ الْبَيْعِ** اودا بيع د موجود كيدلو تقاضا كوي. **وَقَدْ أَنْكَرَهُ فَكَانَ مُنَاقِضًا** حالانكه بائع د بيع نه انكار كړې دې.نودې به پخپله دعوه كي مناقض وي.

حل اللغة: ① البراءة -برى كيدل-② يستدعى-تقاضا كول-③ وجود-موجودګى-④ مناقض-ماتونكي

تشريح:- د ظاهرالرواية دليل دادې.چه د مدعى عليه د هرعيب نه د برى كيدلو د شرط دعوه كول، عقدبيع د سلامت د وصف نه غير سلامت وصف اړخ ته متغيركول دى.په دې طريقه چې ددې شرط نه بغير د عقدبيع د داده.چه مبيع د مشترى لپاره صحيح سالم وى.خوكله چې دا شرط اولګولې شو.نواوس د مبيع صحيح سالم كيدل ضرورى نشو.او عقد د سلامتيا د وصف نه غيرسلامت وصف اړخ ته متغير كول ددې خبرې تقاضا كوى.چه اصل عقد موجود وى.ځكه چې د صفت تصور د موصوف نه بغير ممكن نه دې.نود مدعى عليه د براءت د شرط دعوه كول،د اصل عقد دعوه كول دى.حالانكه د مدعى عليه په دعوه كي سراسر تناقض دې.او په دعوه كي د تناقض په صورت كي چونكه بينه نه قبليږى.په دې وجه په دې صورت كي به هم د مدعى عليه ( بائع) بينه نشى قبلولې.

**بِخِلَافِ الدَّيْنِ لِأَنَّهُ قَدْ يُقْضَى** په خلاف د قرضې،ځكه چې قرضه كله اداكولې شى. **وَإِنْ كَانَ بَاطِلًا عَلَى مَا مَرَّ** اګرچه دا باطل وى.لكه چې وړاندې تير شو.

تشريح:- په خلاف د مسئلې د دين،ځكه چې دين كله په باطل او ناحق طريقه باندې هم اداكولې شى.لكه څنګه چې وړاندې ددې تفصيل تيرشوې دې.حاصل داچه د دين په مسئله كي د مدعى عليه په اقوالوكي توفيق وركول،او تناقض لرې كول ممكن دى.او په دې مسئله د بيع كي توفيق وركول، او تناقض لرې كول ممكن نه دى.نو په دې توپير سره مسئله د بيع په مسئله د دين باندې قياس كول به قياس مع الفارق وى.

## د پور د اقرار تحرير يادبيع نامه ليكلو په آخركښې د انشاء الله ليكلو حكم

**قَالَ ذِكْرُ حَقٍّ كُتِبَ فِي أَسْفَلِهِ** امام محمد ﷫ په جامع صغيركي) فرمائى.چه د يوحق د تحرير لاندې دا اوليكلى شو،، **وَمَنْ قَامَ بِهَذَا الذِّكْرِ الْحَقِّ فَهُوَ وَلِيُّ مَا فِيهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** او كوم كس چې په دې تحرير سره قائم شو.نوكوم څه چې په دې كي دى.هغه ددې ولى دې.انشاءالله تعالى،، **أَوْ كُتِبَ فِي شِرَاءٍ** ياده د اخستلو په اړه كي اوليكل **فَعَلَى فُلَانٍ خَلَاصُ ذَلِكَ وَتَسْلِيمُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** نو په فلانى سړي باندې ددې خلاصول او مشترى ته سپارل لازم دى.انشاءالله تعالى،، **بَطَلَ الذِّكْرُ كُلُّهُ، وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** نودا پوره تحرير( دستاوين) به باطل وى.اودا دامام ابوحنيفه ﷫ په نيز دى.

حل اللغة: ① اسفل -ښكته-② خلاص-خلاصيدل-③ تسليم-سپارل-④ بطل-باطل شو

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړى پخپل خان باندې د پور د اقرار يو تحرير د دستاويز( لوظ نامې) په طور اوليكلو.او په آخركي ئې اوليكل. ﴿ومن قام بهذا الذكر فهو ولى ما فيه انشاءالله تعالى﴾ يعنى كوم سړى سره چې دا تحرير وى.نو څه چې په دې كي ليكلى شوى دى.هغه ددې ولى يعنى مستحق دې.انشاء الله تعالى.يا دڅه شئ اخستلو تحرير يعنى بيع نامه اوليكى.او ددې په آخركي اوليكى.چه فلانى مشترى ته كه څه درك راپيښ شو.يعنى څوك سړې كه د مستحق كيدلو دعوه اوكړى.اودا د مشترى نه اخستل اوغواړى.نو په فلانى سړى يعنى په تحرير



ليكونكى باندې يعنى په ما باندې ددې خلاصول او سپارل لازم دى.انشاء الله تعالى.نوپه دې صورت كي د حضرت امام ابوحنيفه ﷫ مذهب دادې.چه په لفظ انشاء الله وئيلو سره پوره تحرير باطل شو.

**وَقَالَا: إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى هُوَ عَلَى الْخَلَاصِ وَعَلَى مَنْ قَامَ بِذِكْرِ الْحَقِّ**[1] او صاحبين ﷬ فرمائى.چه د انشاءالله لفظ صرف د،،خلاص،، يا،،من قام بذكر الحق،، سره متعلق دې. **وَقَوْلُهُمَا اسْتِحْسَانٌ ذَكَرَهُ فِي الْإِقْرَارِ** اود صاحبينو ﷬ قول استحسان دې. امام محمد ﷫ دا د مبسوط په،،كتاب الاقرار،،كي ذكركړې دى. **لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ يَنْصَرِفُ إِلَى مَا يَلِيهِ** ځكه چې استثناء خپل متصل اړخ ته ګرځى. **لِأَنَّ الذِّكْرَ لِلِاسْتِيثَاقِ، وَكَذَا الْأَصْلُ فِي الْكَلَامِ الِاسْتِبْدَادُ** اوهم دغه دول په كلام كي مستقل كيدل اصل دى.

حل اللغة: ① الاستبداد -مستقل كيدل-ينصرف-اړولې شى-يلي-نزدې ،قريب -الاستئاق-مضبوطتيا

تشريح:- اود صاحبينو ﷬ مذهب دادې.چه آخرى عبارت د كوم سره چې لفظ د انشاء الله متعلق دې.هغه باطليږى.د صاحبينو ﷬ مذهب استحسان دې.او ددوى دليل دادې.چه دستاويز (لوظ نامه) ځكه ليكلې شى.چه په دې سره معامله مضبوطه وى.نو په لفظ انشاء الله سره پوره تحرير باطل او كالعدم كول خلاف اصل دى.او هركله چې پوره تحرير باطلول خلاف اصل دى.نو لفظ انشاء الله به هم دې اړخ ته ګرځولې شى.كوم چې دې سره متصل دې.يعنى په رومبى صورت كي به ﴿ومن قام بهذا الذكر فهو ولى ما فيه﴾ اړخ ته ګرځولې شى.او په دوهم صورت كي به ﴿فعلى فلان خلاص ذالك وتسليمه﴾ اړخ ته ګرځولې شى.او په كلام كي اصل دادې.چه دا مستقل وى.نوګويا د تحرير هره جمله مستقل ده.او هركله چې د تحرير هره جمله مستقل ده.نو لفظ انشاء الله به د اخير مستقل جملې سره متعلق وى.او آخرى جمله به باطلوى.او پاته تحرير به بدستور پاته وى.

**وَلَهُ أَنَّ الْكُلَّ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ بِحُكْمِ الْعَطْفِ** اود امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې.چه د عطف په وجه پوره تحرير د يوځيز پشان دې. **فَيُصْرَفُ إِلَى الْكُلِّ كَمَا فِي الْكَلِمَاتِ الْمَعْطُوفَةِ** نود انشاءالله لفظ به پوره تحرير اړخ ته ګرځولې شى.لكه څنګه چې په كلمات معطوف كي كيږى. **مِثْلُ قَوْلِهِ عَبْدُهُ حُرٌّ وَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ وَعَلَيْهِ الْمَشْيُ إِلَى بَيْتِ اللَّهِ تَعَالَى إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** مثلاً يوكس اووئيل. ﴿عَبْدِي حُرٌّ وَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ وَعَلَى الْمَشْيُ إِلَى بَيْتِ اللَّهِ تَعَالَى إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى﴾

حل اللغة: ① الكلمات -جمع د كلمه -② حر-ازاد\اصيل-③ امراة-ښځه-④ المشي-تګ\تلل

تشريح:- د حضرت امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې.چه بلاشبه په كلام كي اصل دادې.چه دا مستقل وى.خودا هغه وخت دې.كله چې ددې په خلاف باندې دليل موجود نه وى.اوكه د كلام په مستقل كيدلو باندې دليل موجود وى.نودا كلام به مستقل نه وى.بلكه غيرمستقل به وى.او دلته كي دليل موجود دې.په دې طريقه چې د عبارت آخرى جمله ﴿ومن قام........او.....فعلى فلان......﴾ عطف سره ذكر دې.په رومبى جمله كي واؤ دې.او په دويمه جمله كي ،،فاء،، ده.او قاعده ده.چه د عطف په وجه پوره تحرير د يوځيز پشان كيږى.مثلاً كه يوكس اووئيل. ﴿عبدى حر وامرأتى طالق وعلى المشى الى بيت الله تعالى﴾ او بيا ئې په آخر كي انشاء الله اووئيل.نود انشاء الله په وجه به نه غلام آزاد وى.نه به ښځه طلاقه وى.اونه به په ده باندې بيت الله اړخ ته تلل (حج كول) واجب وى.نو هم دغه دول د لوظ نامې تحرير هم چونكه په عطف سره ليكلې شوې دې.په دې وجه به دا پوره تحرير د يوځيز پشان وى.اود لفظ انشاء الله په وجه به پوره مضمون لازم نه وى.بلكه پوره تحرير به باطل او كالعدم وى.

**وَلَوْ تَرَكَ فُرْجَةً قَالُوا: لَا يَلْتَحِقُ بِهِ** او كه ده په منځ كي څه ځائې خالى پريښولو ،(بيائې د انشاءالله تعالى لفظ

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين ﷬ كذا فى فتح القدير(۶\۴۲۵) والعناية (۶\۴۲۴) والبحرالرائق (۷\۴۲) والدرالمختار(۴\۴۰۵، ۴۰۶) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۲۰)-

اولیکلو)،نو مشائخ ﷺ فرمائي،چه دا به دستاویز سره متصل نه وي. وَيَصِيرُ كَفَاصِلِ السُّكُوتِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او داسي به شي،لکه په سکوت سره فصل کونکي.

حل اللغة: ① فرجة -خالي خائي-② يلتحق -يوخائي کيږي.-③ يصير -گرځي-④ السكوت-خاموشي

تشریح: علامه مرغیناني ﷺ فرمائي،چه دا پوره تقریر او اختلاف هغه وخت دي،کله چي ده لفظ انشاء الله عبارت سره یوخائي لیکلی وي،خوکه ده په منځ کي څه خائي پریښودي وي،او بیا ئي انشاء الله لیکلی وي،نو مشائخو فرمائیلي دي،چه په دي صورت کي به لفظ انشاءالله دستاویز سره متصل نه شمارلي کیږي،او ددي په وجه به د عبارت او مضمون هیڅ جزء باطل نه وي،لکه څنگه چي د خبرو په وخت په منځ کي خاموشۍ سره د فاصله کاوه په صورت کي لفظ انشاءالله نه موثر کیږي،مثلاً یو سړی اووئیل،زما غلام آزاد دي،او خاموش شو،بیا ئي ددي نه روسته اووئیل چه، ،انشاءالله، ، نو غلام به آزاد وي،او لفظ انشاء الله به ددي سره متصل نه شمارلي کیږي،او ددي په وجه مخکني کلام نه باطلیږي،دغه ډول که په تحریر کي د مضمون په ختم باندي څه خالي خائي پریږدي،او انشاء الله اولیکلي شي،نو ددي لفظ انشاء الله په وجه به د تحریر هیڅ برخه نه متاثر کیږي،بلکه پوره به د عمل ور وي.

## فصل في القضاء بالمواريث

دا) فصل په میراثونوکي د( قاضي) د فیصلي (په بیان کي) دي.

تشریح:- مرگ چونکه د انسان په دنیاکي د آخری احوالو څخه دي،په دي وجه ددي سره متعلقه احکام هم د احکام قضاء په آخر کي ذکر کړي شوي دي.

معنى المواريث: او مواریث د میراث جمع ده،میراث او ارث د مړي متروکه مال ته وئیلي شي.

### د استصحاب حال تعریف

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ نَصْرَانِيٌّ فَجَاءَتْ امْرَأَتُهُ مُسْلِمَةً فرمائي،اوکه نصراني مړشو،او ده ده ښځه مسلمانه شوه او راغله. وَقَالَتْ أَسْلَمْتُ بَعْدَ مَوْتِهِ او هغي اووئیل،چه زه د نصراني (خاوند) د مرگ نه روسته مسلمانه شوي یم، وَقَالَتْ الْوَرَثَةُ أَسْلَمْتُ قَبْلَ مَوْتِهِ فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْوَرَثَةِ[1] او وارثانو اووئیل،چه ته د هغه د مرگ نه مخکي مسلمانه شوي یې،نود وارثانو قول به معتبر وي.

تشریح:- صورت د مسئلي دادي،چه یو نصراني مړشو،بیا دده ښځه مسلمانه شوه،او راغله،او دعوه ئي اوکړله،چه زه دده د مرگ نه روسته مسلمانه شوي یم،دده دمرگ په وخت کي هم نصرانیه ووم،نود اتحاد دین په وجه ماته میراث ملاویدل پکار دي،اود نصراني نورو وارثانو اووئیل،چه دا خو دده د مرگ نه وړاندي دده په ژوند کي مسلمانه شوي وه،نود اختلاف دین په وجه به دا د وراثت مستحقه نه وي،نود ورثه قول به معتبر وي.

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: الْقَوْلُ قَوْلُهَا او امام زفر ﷺ فرمائي،چه د ښځي قول به معتبر وي. لِأَنَّ الْإِسْلَامَ حَادِثٌ فَيُضَافُ إِلَى أَقْرَبِ الْأَوْقَاتِ څکه چي اسلام جدید دي،په دي وجه به د ټولو نه نژدي وخت اړخ ته منسوب وي.

حل اللغة: حادث -نوي څیز-يضاف-نسبت کولي شي-اقرب-نژدي-الاوقات-جمع د وقت،وخت

تشریح:- اوحضرت امام زفر ﷺ فرمائي،چه د ښځي قول به معتبر وي،امام شافعي ﷺ هم ددي قائل دي،د حضرت امام زفر ﷺ دلیل دادي،چه مسلمان کیدل، ددي ښځي په حق کي یو امرحادث اونوي شئ دي،او قاعده ده،چه کوم شئ حادث (نوي) وي،هغه ددي د ټولو نه نژدي وخت اړخ ته منسوب کولي شي،او ددي ښځي مسلمانیدلو نژدي

[1] ) القول الراجح هو هذا قولنا كذا في فتح القدير(۴۲۵/۶) وردالمحتار(۱۴۹/۴) نقلاً عن القول الراجح (۱۲۲/۲)-



وخت د نصراني د مرگ نه روسته دي،دده د مرگ نه مخکي نه دي،نو ددي مسلمانیدل به د نصراني د مرگ نه روسته اړخ ته منسوب کولي شي،یعني دا به وئیلي شي،چه دا ښځه د خپل نصراني میړه د مرگ نه روسته مسلمانه شوي ده،نود مرگ په وخت چونکه دا هم نصرانیه وه،په دي وجه د اتحاد دین په وجه به دا ښځه د خپل نصراني میړه د میراث حقداره وي.

وَلَنَا أَنَّ سَبَبَ الْحِرْمَانِ ثَابِتٌ فِي الْحَالِ او زمونږ دلیل دادي،چه د میراث نه د محروم کیدو سبب في الحال ثابت دي، فَيَثْبُتُ فِيمَا مَضَى تَحْكِيمًا لِلْحَالِ نو زمانه حال به حکم جوړولي شي،او په تیره شوي زمانه کي به هم دمیراث نه محرومیدل ثابت وي.

حل اللغة: الحرمان -محرومتاي-يثبت-ثابتیږي-تحكيم-حاکم جوړول-مضى-تیرشوي

تشریح:- دلیل دادي،چه في الحال د اختلاف دین په وجه دا ښځه د میراث نه محروم ده،او کوم حکم چي في الحال ثابت وي،هغه د استصحاب حال په وجه په ماضي کي هم ثابت وي،نو دا به وئیلي شي،چه دا ښځه څنگه في الحال د اختلاف دین په وجه د میراث نه محروم ده،دغه ډول د نصراني د مرگ په وخت هم محروم وه،اود نصراني د مرگ په وخت هغه صورت کي محروم کیداي شي،کله چي دا ښځه دده د مرگ نه وړاندي مسلمانه شوي وي،هم دا قول چونکه د نصراني د وارثانو دي،په دي وجه به د نصراني د وارثانو قول معتبر وي.

كَمَا فِي جَرَيَانِ مَاءِ الطَّاحُونَةِ لکه څنگه چي د جرندي د اوبو په جاري کیدلو کي دي.

حل اللغة: ① جريان -جاري کیدل-② الماء-اوبه-③ الطاحونة-جرنده--

تشریح:- لکه څنگه چي د جرندي اوبه جاري کیدلو کي د آجر او مستاجر اختلاف شو،آجر وائي،چه د اجاري پوره موده اوبه جاري وي،لهذا اجرت واجب دي،او مستاجر وائي،چه د اجاري پوره موده اوبه بندي وي،لهذا اجرت واجب نه دي،نوکه في الحال اوبه جاري وي،نود آجر یعني د جرندي د مالك قول به معتبر وي،اوکه اوبه في الحال منقطع وي،نود مستاجر قول به معتبر وي.

وَهَذَا ظَاهِرٌ نَعْتَبِرُهُ لِلدَّفْعِ او دا ښکاره ده،چه ددي مونږ دفع کاوه لپاره اعتبار کوو. وَمَا ذَكَرَهُ يَعْتَبِرُهُ لِلِاسْتِحْقَاقِ او امام زفر ﷺ ددي د استحقاق لپاره اعتبار کوي.

حل اللغة: ① ظاهر -ښکاره-② الدفع-لرې کول-③ يعتبر-اعتبار کولي شي-④ الاستحقاق-مستحق گرځیدل

تشریح:- د عبارت د مطلب بیانولو نه وړاندي په دي مقدمه خان پوهه کړه چي استصحاب حال د اصول فقه یوه اصطلاح ده،ددي معنی ده،په یو وخت کي د څه شي د ثبوت حکم ورکول،په بل وخت کي ددي په ثبوت باندي قیاس کاوه سره،ددي دوي (دوه) صورتونه دي،① یو داچه دا اووئیلي شي،چه چونکه حکم په ماضي کي ثابت وو،په دي وجه به په حال کي هم ثابت وي،② دوهم داچه دا اووئیلي شي،چه چونکه في الحال دا حکم ثابت دي،په دي وجه به ماضي کي هم ثابت وي،د ړومبی مثال حیات مفقود دي،یعني گم شده (ورك شوي) په ماضي کي ژوندي وو،نو في الحال به هم ژوندي وي،اود دوهم مثال د اوبو د جرندي اوبه جاري کیدل دي،یعني که في الحال د جرندي اوبه جاري وي،نو وئیلي به شي، چي په ماضي کي هم جاري وي،اوکه في الحال جاري نه وي،نو وئیلي به شي،چه په ماضي کي هم جاري نه وي.

نو اوس حاصل دا شو چي استصحاب حال زمونږ په نیز حجت دافعه دي،حجت مثبته نه دي،یعني ددي په ذریعه یوڅیز دفع کیدلي شي،خو ثابتیدلي نشي،اود امام زفر ﷺ په نیز حجت مثبته دي.

### د میړه د مرگ نه روسته د اسلام دعوه اود وارثانو انکار کول

وَلَوْ مَاتَ الْمُسْلِمُ وَلَهُ امْرَأَةٌ نَصْرَانِيَّةٌ اوکه مسلمان مړ شو،او دده ښځه نصرانیه ده. فَجَاءَتْ مُسْلِمَةً بَعْدَ مَوْتِهِ نو هغه دده دمرگ نه روسته مسلمانه شوه،او راغله. وَقَالَتْ أَسْلَمْتُ قَبْلَ مَوْتِهِ او وارثانو اووئیل،چه ته د هغه د مرگ نه روسته مسلمانه

شوي يې. وَقَالَتِ الْوَرَثَةُ أَسْلَمَتْ بَعْدَ مَوْتِهِ او وارثانو اوونيل چه ته د هغه د مرګ نه روسته مسلمانه شوي يې. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُمْ أَيْضًا نود وارثانو قول به قبول وی. وَلَا يُحَكِّمُ الْحَالُ او موجوده حالت به حکم نشی جوړولی.

**حل اللغة:** مات -مړشو-المسلم-مسلمان-جاءت-راغله-قبل-وړاندې

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې چه يومسلمان مړشو.دده يوه نصرانيه ښخه ده.نودې د خپل مسلمان مېړه د وفات نه روسته مسلمانه شوه.او راغله.اودې دعوه اوکړله.چه زه دخپل مسلمان مېړه د وفات نه روسته مسلمانه شوې ووم.يعنې زه دهغه د مرګ په وخت مسلمانه ووم.نود اتحاد دين په وجه ماته ميراث ملاويدل پکار دی. اود مړي وارثانو اوونيل.چه ته د هغه د مرګ نه روسته مسلمانه شوې وې.لهذا د اختلاف دين په وجه تاته ميراث ملاويدل پکار نه دې.نو بيا به هم د وارثانو قول معتبر وی.يعنې دا ښخه به ددې د مېړه د ميراث نه محرومولې شی.اود ښځې په حق کې به استصحاب حال حجت نشی ګرځيدلې.يعنې دا به نشی ونيلې.چه دا ښخه چونکه فی الحال مسلمانه ده.نود مېړه د مرګ نه مخکې به هم ددې مسلمانه کيدل ثابت وی.اوهرکله چې د مېړه د مرګ نه وړاندې مسلمانه کيدل ثابت شو.نود اتحاد دين په وجه به ددې لپاره د ميراث استحقاق هم ثابت وی.

لِأَنَّ الظَّاهِرَ لَا يَصْلُحُ حُجَّةً لِلِاسْتِحْقَاقِ دليل دا دې چې ښکاره حال د استحقاق لپاره د حجت کيدلو صلاحيت نه لری.وَهِيَ مُحْتَاجَةٌ إِلَيْهِ حالانکه ښخه ددې محتاجه ده. أَمَّا الْوَرَثَةُ فَهُمُ الدَّافِعُونَ او پاتی شو وارثان،نو دوی دفع کونکی دی.

**حل اللغة:** ① يصلح -صلاحيت لری-② حجة-دليل-③ الاستحقاق-مستحق کيدل-④ الدافعون-لرې کونکی ،دفع کونکی

**تشريح:-** دليل دا دې نشی ونيلې کيدې.که چرې په دې طريقه د استصحاب حال په وجه ښخه د ميراث مستحقه اوګرځولې شوه.نود استصحاب حال حجت مثبته کيدل به لازم شی.يعنې د استصحاب حال په وجه به د ميراث استحقاق ثابتول لازم شی.حالانکه استصحاب حال زموږ په نيز حجت مثبته نه وی.بلکه حجت دافعه وی.نودا استصحاب حال د ښځې لپاره حجت نه جوړيږی.اود ميراث استحقاق به نه ثابتيږی.البته وارثان چونکه د ښځې استحقاق دفع کونکی دی. په دې وجه به استصحاب حال ددوی لپاره حجت وی.اود استصحاب حال تقرير به داوی.چه دا ښخه چونکه په زمانه ماضی کې يعنې د خپل مېړه د مرګ نه وړاندې نصرانيه وه.نود خپل مېړه د مرګ نه روسته به هم نصرانيه وی.او هرکله چې د خپل مېړه د مرګ نه روسته نصرانيه ده.نود مرګ په وخت به په درجه اولی نصرانيه وی.او هرکله چې د مرګ په وخت نصرانيه وه.نو په ښخه مېړه کې د اختلاف دين په وجه به دا نصرانيه ښخه ددې د مسلمان مېړه د ميراث نه محرومولې شی.بهرحال د مړي وارثان چونکه د ميراث حق دفع کونکی دی.ځکه به استصحاب حال ددوی لپاره حجت وی.

وَيَشْهَدُ لَهُمْ ظَاهِرُ الْحُدُوثِ أَيْضًا او ښکاره حدوث هم د دوی شاهد دې.

**تشريح:-** دوهم دليل دې.ددې حاصل دادې.چه اسلام يعنې د ښځې مسلمانه کيدل يو امر حادث دې.او امر حادث اقرب اوقاتو( نژدې وخت) اړخ ته منسوب کولې شی.او اقرب اوقات مابعدالموت دې.ماقبل الموت نه دې.نو نژدې وخت اړخ ته منسوب کاوه سره به دا ونيلی شی.چه دا ښخه د خپل مېړه د مرګ نه روسته مسلمانه شوې ده.او هرکله چې دا ښخه د خپل مېړه د مرګ نه روسته مسلمانه شوې ده.نود مرګ په وخت به يقيناً نصرانيه وه.اوهرکله چې د خپل مېړه د مرګ په وخت نصرانيه وه.نود ښځې مېړه دواړو په منځ کې چونکه اختلاف دين وو.ځکه به دا ښخه د خپل مېړه د ميراث مستحقه نه وی.

**د مودع د وفات نه پس،امين لپاره د مړي د بوځوي پېژندلو په صورت کښي د مال امانت حکم**

قَالَ وَمَنْ مَاتَ وَلَهُ فِي يَدِ رَجُلٍ أَرْبَعَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ وَدِيعَةً فرمائی.اوکه څوک سړې مړشو.اود هغه څلور زره درهم دچا سره وديعت (امانت) دی. فَقَالَ الْمُسْتَوْدَعُ هَذَا ابْنُ الْمَيِّتِ لَا وَارِثَ لَهُ غَيْرُهُ نو مستودع (امين) اوونيل.چه دا دمړي زوې دې.او



دده نه علاوه د مړي هيڅ وارث نشته. فَإِنَّهُ يَدْفَعُ الْمَالَ إِلَيْهِ نو هغه به مال وديعت د مړي ځوی ته ورکوی.

**حل اللغة:** ① يد -لاس،قبضه-② رجل-سړې-③ وديعة-امانت-④ المستودع-چا سره چې امانت کيخودې شوې وی

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.چه يوسړې مثلاً خالد مړشو او دده څلور زره درهم دوهم سړي مثلاً حامد سره وديعت ( امانت) دی.نو مستودع ( امين) يعنې حامد اوونيل چه دا سړې يعنې شاهد ددې مړي يعنې د خالد زوې دې او دده نه علاوه د مړي هيڅ وارث نشته.حاصل داچه مستودع يعنې حامد يوه دعوه دا اوکړله چه شاهد د مړي ( خالد) زوې دې.او دويمه دعوه ئې دا اوکړله چه دده نه علاوه د مړي څوك وارث نشته.نو په دې صورت کې به قاضی مستودع ( حامد) ته حکم کوی.چه د وديعت مال د مړي ځوی يعنې شاهد ته ورکړی.

لِأَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّ مَا فِي يَدِهِ حَقُّ الْوَارِثِ خِلَافَةً دليل دا دې چې مستودع دا اقرار کړې دې چه کوم څه دده په قبضه کې دی.هغه د مړي نائب کيدو سره د وارث حق دې. فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّ أَنَّهُ حَقُّ الْمُوَرِّثِ وَهُوَ حَيٌّ أَصَالَةً نودا داسې شوه.لکه چې ده د مړي په ژوندکې اقرار اوکړو.چه دا مال اصالةً ددې سړي حق دې

**تشريح:-** دليل دادې.چه مستودع دا اقرار کړې دې.چه کوم څه زما په قبضه کې وديعت دې هغه د مړي( خالد) د نائب کيدلو په حيثيت د وارث ( شاهد) حق او دده ملك دې.او کوم سړې چې خپل ځان سره دچا د ملك اقرار اوکړي.په هغه واجب دی.چه هغه دا ملك هغه کس ته حواله کړی.دچا لپاره ئې چې اقرار کړې دې لکه مثلاً که مورث يعنې خالد ژوندې وې.او مستودع د هغه د حق اقرار کړې وو.نو اصالةً به مورث ته حواله کول واجب وو.نوهم دغه ډول کله چې د مورث د مرګ نه روسته د هغه د وارث ( شاهد) لپاره ئې نيابةً اقرار اوکړو نو په مستودع به وارث ( شاهد) ته ورکول واجب او ضروری وی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ لِرَجُلٍ په خلاف ددې که مستودع دچا لپاره اقرار اوکړو. أَنَّهُ وَكِيلُ الْمُودِعِ بِالْقَبْضِ أَوْ أَنَّهُ اشْتَرَاهُ مِنْهُ چې دا د وديعت ايخودونکی وکيل بالقبض دې.يا داچه ده د وديعت ايخودنکی نه اخستې دې. حَيْثُ لَا يُؤْمَرُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو مستودع ته به دا حکم نشی ورکولې.چه دې دغه سړي ته مال امانت ورکړی.

**حل اللغة:** ① اقر-اقرار اوکړو-② المودع-چاسره چې امانت کيخودې شوې وی-③ القبض-وصولی-④ الدفع-ورکول

**تشريح:-** ددې په خلاف که مستودع يعنې حامد دا اقرار اوکړو.چه واصف د وديعت ورکونکی يعنې د عارف د اړخه په وديعت باندې د قبضه کاوه وکيل دې.يا واصف د وديعت ورکونکی يعنې د عارف نه مال وديعت اخستې دې.نو قاضی به مستودع ته دا حکم نه کوی.چه دې د وديعت مال وکيل بالقبض يا مشتری ته اوسپاری.

لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِقِيَامِ حَقِّ الْمُودِعِ إِذْ هُوَ حَيٌّ دليل دا دې چې مستودع اقرار کړې دې.چه د وديعت ايخودونکی حق قائم دې.ځکه چې هغه ژوندې دې. فَيَكُونُ إِقْرَارًا عَلَى مَالِ الْغَيْرِ نودا اقرار د غيرپه مال باندې اقرار شو. وَلَا كَذَلِكَ بَعْدَ مَوْتِهِ اود وديعت ايخودونکی د مرګ نه روسته داسې نه ده.

**تشريح:-** دليل دا دې چې مستودع د وديعت ورکونکی د حق اود هغه د ملك اقرار کړې دې.حالانکه وديعت ورکونکې ژوندې هم دې.په دې طريقه چې مستودع کله دا اوونيل.چه واصف د وديعت ورکونکی يعنې د عارف اړخه په وديعت باندې د قبضه وکيل دې.نو ګويا مستودع ددې خبرې اقرار اوکړو.چه وديعت دده يعنې د عارف حق اود هغه ملك دې.

دغه ډول کله چې مستودع دا اوونيل.چه واصف دا مال وديعت د عارف نه اخستې دې.نو ګويا ددې اقرار ئې اوکړو.چه ددې مال وديعت مالك عارف دې.بهرحال مستودع د وديعت ورکونکی د حق او ملك اقرار کړې دې.او هغه ژوندې هم دې.نود مستودع دا اقرار چې واصف د مودع يعنې د عارف وکيل بالقبض دې.د غير يعنې د مودع د مال اقرار دې.او اقرار چونکه حجت قاصره دې.په دې وجه د بل په حق کې به ددې اقرار صحيح نه وی.او هرکله چې د مستودع دا اقرار ټيك نه دې.نو مستودع ته به دا حکم نشی ورکولې کيدې.چه دې مال وديعت وکيل

بالقبض یعنی واصف ته ورکړي.دغه ډول کله چې مستودع دا اووئیل.چه واصف د ودیعت ورکونکي یعنی عارف نه مال ودیعت اخستي دي.نو ګویا مستودع د مودع یعنی د عارف د ملك زائل کیدلو اقرار کړې دي.حالانکه مستودع د مودع ملك باطلولو او زائل کاوه مالك نه دي.نود مستودع ددي اقرار په وجه به دمودع (ودیعت ورکونکي) ملك نه زائل کیږي.اوکله چې د مودع ملك نه زائل کیږي.نو قاضي به مستودع ته داحکم هم نه ورکوي.چه دې مشتري یعنی واصف ته مال ودیعت ورکړي.اود مودع ( ودیعت ورکونکي) د مرګ نه روسته اقرار علی غیرمال نه لازمیږي.ځکه چې د مودع ( ودیعت ورکونکي) ملك دده دمرګ په وجه زائل شو.یعنی د مودع د مرګ نه روسته د ودیعت مالك مودع پاتې نشو.بلکه ( ددې مالك ) ددې وارث شو.اوکله چې وارث مالك شو.او مستودع ( امین) هم دده لپاره اقرار کړې دې.نودا به اقرار علی غیرمال نه وي.بلکه اقرار علی مال به وي.او اقرار علی مال صحیح دي.په دې وجه د مستودع د مودع د وارث لپاره اقرار به هم صحیح وي.

**بِخِلَافِ الْمَدْيُونِ إِذَا أَقَرَّ بِتَوْكِيلِ غَيْرِهِ بِالْقَبْضِ** په خلاف د قرضداري، کله چې دې د بل سړي په اړه کې د قرضخواه د اړخه د وکیل بالقبض کیدلو اقرار اوکړي. **لِأَنَّ الدُّيُونَ تُقْضَى بِأَمْثَالِهَا** ځکه چې پور بامثالها اداکولې شي. **إِقْرَارًا عَلَى نَفْسِهِ** نودا به پخپل ذات باندې اقرار وي. **فَيُؤْمَرُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ** نو قرضدار ته به حکم ورکولې شي.چه هغه ئې وکیل بالقبض ته ورکړي.

**حل اللغة:** ① **المدیون** -قرضدار-② **توکیل**-وکیل مقرر کول-③ **الدیون**-جمع د دین،قرض-④ **یؤمر**-حکم به کولې شي

**تشریح:**- اوکه قرضدار دا اقرار اوکړو،چه قرضخواه په قرضه باندې د قبضې وکیل فلانی سړی جوړکړې دې.نو قاضي به قرضدار ته حکم ورکوي.چه دې د پور مال هغه وکیل ته ورکړي.ځکه چې قرضه باعیانها نشي ادا کیدلې.بلکه بامثالها ادا کولې شي.یعنی په پور کې چې کوم شئ اخستې شي.بعینه هم هغه نشي اداکیدلې.بلکه د هغې مثل اداکولې شي.اود مثل مالك پخپله قرضدار دې.قرضخواه نه دې.نود قرضدار د وکیل بالقبض په اړه کې اقرار خپل ذات باندې اقرار دې.او پخپل ذات باندې د اقرار کاوه کې هیڅ باك نشته.نودا اقرار به ټیك وي.او هرکله چې دا اقرار ټیك دې.نو قرضدار ته به د مال پور هم هغه مقرله وکیل لپاره د ورکاوه حکم کولې شي.

**دمودع د وفات نه پس،د بل کس لپاره د مړي د ځوي اقرار کول او د ړومبي ځوی انکارکولو مسئله**

**فَلَوْقَالَ الْمُودَعُ لِآخَرَ هٰذَا ابْنُهُ أَيْضًا** اوکه مستودع ( امین) د بل په اړه کې اووئیل.چه داهم دمړي زوې دې. **وَقَالَ الْأَوَّلُ لَيْسَ لَهُ ابْنٌ غَيْرِي قَضَى بِالْمَالِ لِلْأَوَّلِ** او ړومبی اووئیل.چه زما نه علاوه د مړي هیڅ زوې نشته.نود مال فیصله به د ړومبی لپاره کولې شي.

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.که مستودع ( امین) د مودع ( ودیعت ورکونکي) د وفات نه روسته د یوسړي په اړه کې اووئیل.چه دا هم د مړي زوې دې.خو ړومبی ځوی ددې انکار اوکړو.اودا ئې اووئیل.چه د مړکیدونکي زما نه سوا ځوك زوې نشته.نو په دې صورت کې به قاضي مستودع ( امین) ته ددې خبرې حکم ورکوي.چه دې پوره مال ودیعت ړومبی ځوی ته ورکړي.او دوهم زوې ( دکوم لپاره ئې چې په دوهم ځل د مړي د ځوی کیدلو اقرارکړې دې) ته به هیڅ نه ورکوي.

**لِأَنَّهُ لَمَّا صَحَّ إِقْرَارُهُ لِلْأَوَّلِ انْقَطَعَ يَدُهُ عَنِ الْمَالِ** دلیل دا دې چې کله د مستودع اقرار کول د ړومبی لپاره صحیح شو.نود مال نه دده قبضه منقطع شوه. **فَيَكُونُ هٰذَا إِقْرَارًا عَلَى الْأَوَّلِ** نود مستودع ( دوهم ) اقرار به د ړومبی باندې وي. **فَلَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ لِلثَّانِي** په دې وجه به دده اقرار د ثاني لپاره صحیح نه وي.

**تشریح:**- دلیل دادې.چه هرکله د مستودع اقرار د ړومبی ځوی لپاره په داسې وخت کې صحیح شو.په کوم وخت کې چې ځوك مزاحم ( مقابل) موجود نه دې.نود مال ودیعت نه د مستودع قبضه منقطع شوه.اوس ددې نه روسته د مستودع دوهم ځوی لپاره اقرار کول غیر باندې یعنی په ړومبی ځوی باندې اقرارکول دی.اودا خبره مسلم ده.چه غیرباندې اقرار کول نه صحیح کیږي.نوهرکله چې په غیر باندې اقرارکول نه صحیح کیږي.نود مستودع دوهم



ځوی لپاره په ړومبی ځوی باندې اقرارکول به هم صحیح نه وي.

**كَمَا إِذَا كَانَ الْأَوَّلُ ابْنًا مَعْرُوفًا** لکه مثلاً که ړومبي مشهور زوی وي.

**تشریح:**- لکه مثلاً که د مړي زوې په خلګو کې مشهور وي.یعنی واړه خلګ ئې پیژني.چه فلانی سړی د مړي زوې دې.نو په داسې صورت کې دبل لپاره د مستودع اقرار نه صحیح کیږي.نوهم دغه ډول د ړومبی ځوی لپاره اقرار کاوه نه روسته به هم د دوهم لپاره اقرارکول ټیك نه وي.اوکله چې د دوهم ځوی لپاره اقرارکول صحیح نشو.نو مستودع ته به ددې خبرې حکم ورکولې شي.چه دې پوره مال ودیعت ړومبی ځوی ته ورکړي.او دوهم ځوی ته ورنکړي.

**وَلِأَنَّهُ حِينَ أَقَرَّ لِلْأَوَّلِ لَا مُكَذِّبَ لَهُ فَصَحَّ**، او ځکه چې کوم وخت مستودع د ړومبی لپاره اقرار اوکړو.نو دده ځوك دروغجن کونکې نه وو.نو اقرار صحیح شو. **وَحِينَ أَقَرَّ لِلثَّانِي لَهُ مُكَذِّبٌ فَلَمْ يَصِحَّ** اوکوم وخت ئې چې د دوهم لپاره اقرار اوکړو.نو دده دروغجن کونکې ( ړومبني ځوی) دې.نودا اقرار به صحیح نه وي.

**حل اللغة:** ① **حین** -وخت-② **مکذب**-دروغژن کونکې-③ **صح**-صحیح شو-④ **اقر**-اقراراوکړو

**تشریح:**- دوهم دلیل دادې.چه کله مستودع د ړومبی ځوی لپاره اقرار اوکړو.نو دده هیڅ ځوك تکذیب کونکې نه وو.نود ړومبی ځوی لپاره اقرارکول صحیح شو.اوکله ئې چې د دوهم ځوی لپاره اقرار اوکړو.نو ړومبې زوې دده تکذیب کونکې دې.نود دوهم ځوی لپاره اقرار صحیح نشو.نو ړومبې زوې دچا لپاره چې اقرار صحیح دې.پوره مال ودیعت به هم هغه ته ورکولې شي.او دوهم زوې دچا لپاره چې اقرار صحیح نه دې.هغه ته به د مال ودیعت هیڅ برخه نشي ورکولې.

**د مړي میراث تقسیمولو کښې قاضي د پاره دکفیل اخستلو حکم**

**قَالَ وَإِذَا قُسِمَ الْمِيرَاثُ بَيْنَ الْغُرَمَاءِ وَالْوَرَثَةِ** فرمائي.اوکله چې قاضي د مړي میراث په قرضخواهانو او وارثانوکې ویش کړو. **فَإِنَّهُ لَا يُؤْخَذُ مِنْهُمْ كَفِيلٌ وَلَا مِنْ وَارِثٍ** نو ددوی څخه به کفیل نشي اخستې.اونه به د وارث نه (اخستې شي) **وَهٰذَا شَيْءٌ احْتَاطَ بِهِ بَعْضُ الْقُضَاةِ وَهُوَ ظُلْمٌ** ودا کفیل اخستل داسې شئ دې.چه په دې سره بعض قاضیانو احتیاط کړې دې.حالانکه دا ظلم دې. **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ**،[1] اودا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی. **وَقَالَا: يُؤْخَذُ الْكَفِيلُ** او صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه قاضي کفیل اخستې شي.

**حل اللغة:** ① **قسم** -ویش شي-② **الغرماء**-قرضخواهان-③ **یؤخذ**-اخستلې شي-④ **احتاط**-احتیا ط اوکړو

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.که قرضخواهانو د مړي په ذمه خپله قرضه په بینه سره ثابته کړله.او قاضي د مړي په متروکه مال کې ددوی پور اداکړي.

نوحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي.چه د قرضخواهانو څخه به په دې خبره کفیل نشي اخستې چې زموږ نه سوا د مړي بل پور خواه نشته یا زموږ نه سوا د مړي بل وارث نشته.بلکه کله چې دوی بینه قائم کړل.نو دوی ته به د مړي د میراث نه قرضه ادا کولای شي او دوي ته به د مړي میراث ورکرلې شي. اودا بعضې قاضیانو چې احتیاطاً کفیل اخستې دی مثلاً ابن ابی لیلی احتیاطاً نودغه شرعاً ظلم دې.

اوصاحبین رحمهما الله فرمائي.چه په مذکوره مسئله کې قاضي د مدعیانو نه کفیل اخستې شي.

**وَالْمَسْأَلَةُ فِيمَا إِذَا ثَبَتَ الدَّيْنُ وَالْإِرْثُ بِالشَّهَادَةِ** او مسئله په هغه صورت کې ده.کله چې قرضه او میراث په شهادت سره ثابت وي. **وَلَمْ يَقُلِ الشُّهُودُ لَا نَعْلَمُ لَهُ وَارِثًا غَيْرَهُ** او ګواهانو هم دا اووئیل.چه موږ دده نه سوا دمړي هیڅ وارث نه پیژنو.

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٤٠٧\٤) والبحرالرائق (٤٥\٧) وكنز الدقائق (٢٥٥) وملتقى الابحر(٢٤٩\٣) نقلاً عن القول الراجح (١٢٣\٢)-

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمايي چې زير بحث اختلاف په هغه صورت کې دی چې قرضخواه او دغه ډول مدعی د وراثت د خپل پور اود استحقاق وراثت ثبوت په ګواهانو سره کړی وی مثلاً خالد دزيد مرحوم په وارث بکر باندې دعوه اوکړه چې زما ستا په زيد پلار باندې پنځه زره روپۍ دی او ګواهان ئې په خپله دعوه پيش کړل يا دغه ډول خالد په بکر باندې دعوه اوکړه چې ته په کور کې اوسيږې دا زما د مرحوم پلار دی.او زه د هغه زوی او وارث يم.

اودغه شان چې ګواهان خو نه د دې خبرې ګواه ورکړی چې دده بل پور خواه يا بل وارث نشته يعنی د بل قرضخواه او وارث نفی اونه کی (اونکړی)بلکه په شهادت کې نه د بل قرضخواه يا وارث اثبات وی او نه نفی وی نوپه دې صورت کې دغه ذکرشوې اختلاف دې اوکه بالفرض ګواهان په خپل شهادت کې دا ووايي چې موږ نه د ده وارثان پيژنو.اونه د هغوی د تعداد نه خبريو.نو په دې صورت کې به بالاتفاق مدعی بينه نه قبليږی.او د مړی په ميراث کې به مدعی ته هيڅ څه نشی ورکولې خکه چې کله ګواهانو د وارثانو صحيح تعداد باندې ګواهی نه ده ورکړې.نود مدعی برخه به هم معلومه نه وی.نود مدعی لپاره به د قاضی فيصله قضاء بالمجهول وی. او قضاء بالمجهول متعذر او ناجائز ده.په دې وجه به په دې صورت کې نه د خالد بينه قبول وی.اونه به دده په حق کې څه فيصله ورکولې شی.اوکه د مدعی ګواهانو ګواهی ورکړله.چه مدعی د مړی زوې اود هغه وارث دې.او موږ دده نه علاوه بل څوك وارث هم نه پيژنو.نو په دې صورت کې به بالاتفاق قاضی دا حکم کوی.چه د څه انتظار نه بغير به پوره مال متروکه مدعی ته ورکوی.اود مدعی څخه به بالاتفاق کفيل هم نشی اخستلې.

**لَهُمَا أَنَّ الْقَاضِيَ نَاظِرٌ لِلْغُيَّبِ،** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه قاضی د غائب خلګو لپاره نګران (محافظ) دې **وَالظَّاهِرُ أَنَّ فِي التَّرِكَةِ وَارِثًا غَائِبًا أَوْ غَرِيمًا غَائِبًا،** او ښکاره داده.چه په ترکه کې کوم وارث غائب وی.يا کوم يو قرضخواه غائب وی. **لِأَنَّ الْمَوْتَ قَدْ يَقَعُ بَغْتَةً فَيُحْتَاطُ بِالْكَفَالَةِ** خکه چې مرګ کله اچانك واقع کيږی.نو کفيل به اخلی.او احتياط به کوی.

**حل اللغة:** ① **ناظر** -کتونکې-② **التركة**-ميراث-③ **غريم**-قرضخواه-④ **بغتة**-ناڅاپه

**تشريح:-** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه قاضی د غائب خلګو د نګرانئ لپاره مامور دې.اودا ښکاره ده.چه شايد په ترکه کې د موجوده وارثانو نه علاوه بل څوك وارث غائب وی.ياد موجوده قرضخواهانو نه علاوه څوك قرضخواه غائب وی.خکه چې کله کله مرګ اچانك واقع کيږی.نود احتياط تقاضا داده.چه قاضی د موجوده وارثانو اود موجوده قرضخواهانو نه کفيل واخلی.چه ددې کفيل په ذريعه غائب وارث اود غائب قرضخواه د حق ساتنه اوکړې شی.

**كَمَا إِذَا دَفَعَ الْآبِقَ وَاللُّقَطَةَ إِلَى صَاحِبِهِ وَأَعْطَى امْرَأَةَ الْغَائِبِ النَّفَقَةَ مِنْ مَالِهِ** لکه مثلاً قاضی تختيدونکې غلام دده مالك ته يا غورځيدلې شوې لقطه ددې مالك ته يا د غائب ښځې ته دهغه د مال نه نفقه ورکړله.

**حل اللغة:** ① **الابق** -تختيدونکې غلام-② **اللقطة**-هغه شئ چې په لار کې موندلې شوې وی-③ **اعطى**-ورکړی

**تشريح:-** لکه مثلاً قاضی تختيدلې غلام هغه سړی ته ورکړی.چه دده مالك کيدل د قاضی په نيز ثابت شوی وی.يا پريوتلې لقطه هغه کس ته ورکړی.چه دده مالك کيدل د قاضی په نيز ثابت شوی وی.نو قاضی بالاتفاق احتياطاً د غلام او لقطه د مالك نه کفيل اخستلې شی.لکه مثلاً د يو غائب سړی ښځې د قاضی نه نفقه طلب کړله.او ددې غائب سړی چا سره څه مال وديعت وی.او مستودع (امين) د وديعت اقرار کوی.او ددې ښځې د غائب سړی د ښځه (بی بی) کيدلو اقرار هم کوی.نو قاضی به ددې غائب سړی د مال نه دده ښځې ته نفقه ورکوی.او ددې ښځه به کفيل اخلی.نو هم دغه ډول په ذکرشوې مسئله کې د قرضخواهانو او وارثانو نه په کفيل اخستلوکې هيڅ باك نشته.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ حَقَّ الْحَاضِرِ ثَابِتٌ قَطْعًا،أَوْ ظَاهِرًا** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د قرضخواه حاضر،ياد حاضر



وارث حق قطعاً ثابت دې.يا په ښکاره ثابت دې. **فَلَا يُؤَخَّرُ لِحَقٍّ مَوْهُومٍ إِلَى زَمَانِ التَّكْفِيلِ** نود موهوم حق په وجه به د کفيل ور کاوه د زمانې پورې نشی موخر کولې.

**حل اللغة:** ① **ثابت** -ثابت دې-② **قطعا**-په يقين سره-③ **موهوم**-چه ګمان پرې شوې وی-④ **زمان**-زمانه،وخت

**تشريح:-** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې چه د موجوده قرضخواهانو او وارثانو حق قطعی طور باندې ثابت دی.په دې شرط چې بل قرضخواه او وارث په واقع کې معدوم (غيرموجود) وی.ياد موجوده قرضخواهانو حق په ښکاره ثابت دې.په دې شرط چې بل قرضخواه او وارث په واقع کې موجود وی.خو قاضی ته د هغه اظهار شوی نه وی.دا خيال سائل پکار دی.چه قاضی د څه شئ د اظهار مکلف نه دې.بلکه کوم شئ چې دده په نيز په حجت او دليل سره ښکاره شوې وی.په هغې باندې د عمل کاوه مکلف دې.بهرحال د موجوده قرضخواهانو او وارثانو حق قطعاً ثابت دې.يا په ښکاره ثابت دې.اوکوم شئ چې قطعاً يا په ښکاره ثابت وی.هغه د څه موهوم په وجه نشی موخرکولې.اود يو قرضخواه غائب کيدل، يا د وارث غائب کيدل يو موهوم امر دې.نو موجوده قرضخواهان او وارثان به د کفيل ور کاوه مکلف کول،او ددوی حقوق اداکول به د کفيل ور کاوه د زمانې پورې نشی موخر کولې.

**كَمَنْ أَثْبَتَ الشِّرَاءَ مِمَّنْ فِي يَدِهِ** لکه مثلاً يوکس د قابض نه اخستل ثابت کړل. **أَوْ أَثْبَتَ الدَّيْنَ عَلَى الْعَبْدِ حَتَّى يُبَاعَ فِي دَيْنِهِ** يا ئې په غلام باندې قرضه ثابت کړله.تردې چې غلام دده په قرضه کې خرڅ کړې شو. **لَا يُكَفَّلُ** نود مشتری يا قرضخواه څخه به کفيل نشی اخستې.

**تشريح:-** لکه مثلاً خالد د بينه په ذريعه دا ثابته کړله.چه ماد قابض مثلاً د حامد نه فلانې شئ اخستې دې.نو قاضی به مشتری خالد ته د مشتری (اخستې شوی شئ يعنی د مبيع) ور کاوه حکم کوی.خود مشتری څخه به ددې وهم په بناء باندې چې شايد بل مشتری (د خالد نه وړاندې) د حامد نه دا شئ اخستې وی. کفيل نه اخلی.اولکه مثلاً يو سړی مثلاً واصف د بينه په ذريعه ثابته کړله.چه زما دومره قرضه په فلانی غلام باندې ده.نود واصف د پور په وجه داغلام خرڅ کړې شو.نو صرف ددې وهم په وجه چې شايد په دې غلام باندې د بل چا قرضه هم وی.د واصف قرضخواه نه کفيل نشی اخستې کيدې.نو هم دغه ډول په ذکرشوې مسئله کې د غائب قرضخواه اود غائب وارث د موهوم حق په وجه به د موجوده قرضخواهانو او موجوده وارثانو نه کفيل نه اخستلې کيږی.

**وَلِأَنَّ الْمَكْفُولَ لَهُ مَجْهُولٌ فَصَارَ كَمَا إِذَا كَفَلَ لِأَحَدِ الْغُرَمَاءِ** او خکه چې مکفول له مجهول دې.نوداسې شوه.لکه چې د يو قرضخواه لپاره کفيل شوې وی.

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه د مکفول له مجهول کيدل د صحت کفاله نه مانع دې.حالانکه دلته کې مکفول له مجهول دې.خکه چې قرضخواه غائب،يا وارث غائب دچا لپاره چې کفيل اخستلې شی.هغه مجهول دې.نودا داسې شوه.لکه چې د يو قرضخواه لپاره کفيل شوې وی.حالانکه دا کفاله صحيح نه ده.دغه ډول په ذکرشوې مسئله کې هم د مجهول قرضخواه يا مجهول وارث لپاره کفيل اخستل جائز نه دی.

**بِخِلَافِ النَّفَقَةِ لِأَنَّ حَقَّ الزَّوْجِ ثَابِتٌ وَهُوَ مَعْلُومٌ** په خلاف د نفقې،خکه چې د ميړه حق ثابت دې.او ميړه معلوم دې.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله د اړخه د پيش کړی مثالونو په خواب کې فرمائی.چه په مال وديعت کې د ميړه حق هم ثابت دې.او هغه يو معلوم سړې دې.نو ښځې ته نفقه ور کاوه په وخت د ميړه لپاره کفيل اخستل هرکله چې په وجه کفيل اخستل دی.او چونکه ميړه معلوم دې.په دې وجه به مکفول له مجهول هم نه وی.نو مکفول له (خاوند) معلوم هم دې.او په مال وديعت کې دده حق هم ثابت دې.نودا کفاله به صحيح وی.

**وَأَمَّا الْآبِقُ وَاللُّقَطَةُ فَفِيهِ رِوَايَتَانِ،** او پاتې شو تختيدونکې غلام او لقطه،نو په دې کې دوې (دوه) روايتونه دی. **وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ عَلَى الْخِلَافِ** او اصح دادې.چه دا هم مختلف فيه دی.

تشریح:- او پاتې شو په تختیدلي غلام اود لقطه په مسائلوكي كفیل اخستل،نو په دې كي د امام صاحب رحمه الله نه دوې (دوه) روایتونه دي.په یو روایت كي فرمائي.چه زما په نیز خوښه خبره داده.چه قاضي د غلام مالك اود لقطه مالك نه وكیل واخلي.او په بل روایت كي فرمائي.چه زه دا خبره نه خوښوم.چه د غلام مالك اود لقطه مالك نه كفیل واخستلې شي.

علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.صحیح قول دادې.چه په تختیدلي غلام او لقطه كي د كفیل اخستلو مسئله هم مختلف فیه ده.یعني د امام صاحب رحمه الله په نیزبه كفیل نشي اخستلې كیدې.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به كفیل اخستلې شي.نو هركله چې په دې دواړه مسئلوكي د حضرت امام صاحب رحمه الله په نیز كفیل نشي اخستلې.نود متن مسئله به په دې باندې قیاس كول صحیح نه وي.

وَقِيلَ إِنْ دَفَعَ بِعَلَامَةِ اللُّقَطَةِ أَوْ إِقْرَارِ الْعَبْدِ يَكْفُلُ بِالْإِجْمَاعِ او ویلي شوي دي.كه قاضي لقطه ددې مالك ته ددې د علامانو بیانولو باندې وركړه.یاني غلام دده په اقرار باندې وركړو.نو بالاجماع به د مالك نه كفیل اخستې شي.لِأَنَّ الْحَقَّ غَيْرُ ثَابِتٍ وَهٰهُنَا كَانَ لَهُ أَنْ يَمْتَنِعَ ځكه چې حق غیرثابت دې.په دې وجه قاضي ته اختیار دې.چه دې منع كړي.

تشریح:- بعض حضرات فرمائي.كه قاضي لقطه ددې مالك ته ددې د علامتونو په بیانولو باندې وركړله.یا ئې غلام دده په اقرار باندې وركړو.نو بالاجماع به د مالك نه كفیل اخستلې شي.یعني كه مالك د لقطه علامتونه بیان كړل.اود علامتونو بیانولو په وجه قاضي ذكرشوې لقطه مالك ته وركړله.یا تختیدلي غلام اقرار اوكړو.چه زه د فلاني غلام یم.اود غلام ددې اقرار په وجه قاضي دا غلام دده مالك ته اوسپارلو.نو بالاجماع به د مالك او آقا نه كفیل اخستلې شي.ځكه چې د لقطه علامتونه بیانولو سره په لقطه كي د علامتونو بیانونكي حق نه ثابتیږي.اود غلام په اقرار سره د مقرله مالكانه حق نه ثابتیږي.نو هركله چې په علامتونو بیانولو سره په لقطه كي اود غلام د اقرار په وجه په غلام كي د مالك حق نه ثابتیږي.نو ددې احتمال په بناء باندې چې بل څوك ددې مالك وي.د لقطه اود غلام د مالك نه كفیل اخستلې شي هم دا وجه ده.چه د مالك د لقطه علامتونه بیانولو باوجود،اود غلام د اقرار كاوه باوجود قاضي ته دا اختیار دې.چه دې ذكرشوې لقطه او غلام مالك ته ورنكړي.نوهر كله چې په دې صورتونوكي قاضي ته بالكل د نه وركاوه اختیار دې.نود كفیل وركاوه پورې د مؤخر كاوه اختیار به په درجه اولي حاصل وي.

وَقَوْلُهُ ظُلْمٌ: أَيْ مَيْلٌ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ اود امام ابوحنیفه رحمه الله قول،،و هو ظلم،، یعني د نیغې لارې نه كوږ شوې دې. وَهٰذَا يَكْشِفُ عَنْ مَذْهَبِهِ رَحِمَهُ اللّٰهُ اودا ،،وهو ظلم،، ویل دا خبره ښكاره كوي.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دادې. أَنَّ الْمُجْتَهِدَ يُخْطِئُ وَيُصِيبُ چې مجتهد خطاء هم كوي.او ټيك كوي هم. لَا كَمَا ظَنَّهُ الْبَعْضُ داسې نه لكه څنګه چې بعضو ګمان كړې دي.

حل اللغة: ① سواء-نیغه-② یكشف-ښكاره كوي-③ یخطئ-خطا كیږي-④ یصیب-حق ته رسي

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د امام صاحب رحمه الله په قول «وهو ظلم» كي د ظلم معنی د نیغې لارې نه د كږیدلو ده. او په مجتهد فیه مسئله باندې د ظلم اطلاق كاوه سره داخبره ښكاره كیږي.چه د امام صاحب رحمه الله مذهب دادې.چه مجتهد مخطي هم كیداې شي.او مصیب هم كیداې شي.داسې نه لكه څنګه چې معتزله وائي.چه مجتهد همیشه پخپل اجتهاد كي په صواب باندې وي.په خطا باندې كله هم نه وي.او معتزله وائي.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله او دده د اصحابو هم دا مذهب دې.حضرت امام اعظم رحمه الله او دده اصحابو ته ددې عقیدې نسبت كول سراسر غلط دي.

**د غائب وارث په موجودګۍ كښې د مقبوضه كور په میراث كښې د تقسیمولو مسئله**

قَالَ وَإِذَا كَانَتِ الدَّارُ فِي يَدِ رَجُلٍ فرمائي.اوكه یو كور د یوسړي په قبضه كي وي. وَأَقَامَ الْآخَرُ الْبَيِّنَةَ أَنَّ أَبَاهُمَا مَاتَ او دوهم كس بینه قائم كړل.چه زما پلار مړ شو. وَتَرَكَهَا مِيرَاثًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ فُلَانٍ الْغَائِبِ او دا كور ئې زما او زما د



فلاني غائب رور په منځ كي میراث پرېښودې دې. قُضِيَ لَهُ بِالنِّصْفِ نود نصف كور به دده لپاره حكم كولې شي. وَتُرِكَ النِّصْفُ الْآخَرُ فِي يَدِ الَّذِي هِيَ فِي يَدِهِ وَلَا يُسْتَوْثَقُ مِنْهُ بِكَفِيلٍ او دوهم نصف به د قابض په قبضه كي پرېخودلې شي.اود قابض څخه به د وثیقې په طور كفیل نشي اخستې. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دي.

حل اللغة: ① یستوثق-وثیقه به اخستې شي،یعني هغه څیز كوم چې د اعتماد لپاره من علیه الحق اخستې شي

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یوكور د یو كس مثلاً د واصف په قبضه كي دې.او دوهم كس مثلاً عارف بینه پیش كړل.چه زما پلار مړشوې دې.اودا كورئې زما او زما د رور شاهد لپاره میراث پرېښودې دې. او زما رورشاهد غائب دې.نو ددې كور د نصف فیصله به د عارف لپاره كولې شي.او دوهم نصف به د واصف په قبضه كي پرېخودلې شي.څوك چې فی الحال قابض دې.تردې چې شاهد چې اوس وخت غائب دې.هغه راشي.دا مذهب د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دې.اود قابض څخه به بالاجماع كفیل نه اخستلې كیږي.

وَقَالَا: إِنْ كَانَ الَّذِي هِيَ فِي يَدِهِ جَاحِدًا او صاحبین رحمهما الله فرمائي.كه قابض د مدعی د حق منكر وو. أُخِذَ مِنْهُ وَجُعِلَ فِي يَدِ أَمِينٍ نو پاته نصف به هم دده نه اخستې شي.اود یو امین سړي په قبضه كي به ایخودې شي. وَإِنْ لَمْ يَجْحَدْ تُرِكَ فِي يَدِهِ (1) اوكه منكر نه وو.نو دده په قبضه كي به پرېخودلې شي.

حل اللغة: ① جاحد-انكاركونكې-② اخذ-اخستې به شي-③ ید-قبضه-④ امین-چا سره چې امانت كیخودې شوې وي

تشریح:- صاحبین رحمهما الله فرمائي.كه قابض (واصف) د عارف د دعوې منكر وي.او عارف پخپله دعوه باندې بینه پیش كړل.نود كور دوهم نصف به د قابض (واصف) د قبضه نه اوښكلې شي.اود یو امین او دیانتدار سړي په قبضه كي به ساتلې شي.اوكه قابض (واصف) د عارف یعني د مدعی د دعوه منكر نه وي.نود كور دوهم نصف به د قابض (واصف) په قبضه كي پرېخودلې شي.

لَهُمَا أَنَّ الْجَاحِدَ خَائِنٌ فَلَا يُتْرَكُ الْمَالُ فِي يَدِهِ، د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د حق منكر خائن وي.نود هغه په قبضه كي مال نشي پرېخودلې. بِخِلَافِ الْمُقِرِّ لِأَنَّهُ أَمِينٌ په خلاف د اقراركونكي،ځكه چې دې امین وي.

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې. كه قابض (واصف) د عارف د دعوې منكر وي.نود انكار په وجه دده خیانت ښكاره شوې دې.اود بل مال چونكه د خائن سړي په قبضه كي نشي پرېخودلې.په دې وجه به د كور دوهم نصف د قابض (واصف) كوم چې د دعوې د انكار په وجه خائن دې.دده په قبضه كي به نشي پرېخودلې.اود خائن سړي په قبضه كي د نه پرېښولو حكم ځكه دې.چه دې به داخپل ملك اوګڼي.اوګواهان به دروغ ګڼړي.اوبه دې كي به خپل تصرف كوي.یاد خیانت په وجه تصرف كولې شي.نود غائب (شاهد) د برخې (حصې) د ساتنه په خاطر به دا نصف كور د قابضه په قبضه كي نشي ساتلې .بلكه دده د قبضې څخه به اوښكلې شي.اود یو دیانتدار او امانتدار سړي به حواله كولې شي.اوكه قابض (واصف) د مدعی (عارف) د دعوې مقر وي.نوهغه د دعوې د اقرار په وجه امین دې.اود امین سړي په قبضه كي دچا مال پرېښولو كي هیڅ باك نشته.بلكه غوره داده.چه د اقرار په صورت كي كور د قابض (واصف) په قبضه كي اوساتلې شي.ځكه چې مړي په ده باندې اعتماد كړې وو.اودا كور ئې دده سره ودیعت ایخودې وو.او دده د اړخه تراوسه پورې هیڅ خیانت نه دې ښكاره شوې.نود مړي د اعتماد په وجه دې زیات حقدار دې.چه د شاهد د راتلو پورې د هغه د برخې (حصې) یعني د نصف كور ساتنه اوكړي.

وَلَهُ أَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ لِلْمَيِّتِ مَقْصُودًا اود امام صاحب رحمه الله دلیل دادې.چه فیصله بالقصد د مړي لپاره واقع شوې ده. وَاحْتِمَالُ كَوْنِهِ مُخْتَارَ الْمَيِّتِ ثَابِتٌ اود قابض په اړه كي چونكه دا احتمال دې.چه دده د مړي د اړخه مختار كیدل ثابت وي. فَلَا

---

(1) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى الدرالمنتقى (٢٥٠\١٣) وتبيين الحقائق (٢٠٢\١٤)نقلاً عن القول الراجح (١٢٣\١٢)-

تنْتَقِضُ يَدُهُ ځکه به قبضه نشی ختمولې. كَمَا إِذَا كَانَ مُقِرًّا لکه مثلاً که دې اقرار کونکې وې. (نو مال به دده په قبضه کې پرېښودې شي)

حل اللغة: ① وقع -ثابت شوې وی-② المیت-مړې -③ مختار-اختیارورکړې شوې-④ تنتقض-ماتیږی

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه د قاضی فیصله اولاً او بالذات د مړی لپاره واقع کیږی.په دې وجه ددې ثابتیدلو نه روسته چې دا کور او مال د مړی دې.ددې ځخه به د هغه قرضونه اداکولې شی.او د هغه ...ونه به نافذ کولې شی.اود قابض ( واصف) د انکار باوجود دا احتمال ثابت دې.چه قابض به د مړی د اړخه مختار وی.نو هرکله چې دا احتمال ثابت دې.نود غیر په وجه به دده قبضه نشی ختمولې.لکه مثلاً که قابض مقر وې.نو دده قبضه نشوه لرې کولې.

وَجُحُودُهُ قَدِ ارْتَفَعَ بِقَضَاءِ الْقَاضِي، او دده انکار کله د قاضی د حکم په وجه لرې کیداې شی. وَالظَّاهِرُ عَدَمُ الْجُحُودِ فِي الْمُسْتَقْبَلِ اوبه راروانه زمانه کې منکر کیدل ښکاره نه دی. لِصَيْرُورَةِ الْحَادِثَةِ مَعْلُومَةً لَهُ وَلِلْقَاضِي ځکه چې دا واقعه ده ته او قاضی دواړو ته معلومه ده.

حل اللغة: ① جحود -سره دعلم نه انکار-② ارتفع-پورته شو-③ المستقبل -راروانه زمانه-④ الحادثة-واقعه

تشریح:- په دې عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د دلیل ځواب دې.حاصل د ځواب دادې.چه قابض (واصف) که د مدعی (عارف) د دعوې منکر وی.نو تاسو اوفرمائیل.چه د انکار په وجه دده خیانت ښکاره شوې دې.اود خائن په قبضه کې د چا مال نشی پریخودلې.بلاشبه صحیح ده.خود دعوې منکر کیدلو په وجه د خیانت ښکاره کیدل به یاد ماضی په اعتبار سره وی.او یا به د مستقبل په اعتبار سره وی.که د ماضی په اعتبار سره وی.یعنی د قاضی د فیصلې نه وړاندې قابض ( واصف) دمدعی ( عارف) د دعوې انکار اوکړو.او بیا عارف په دې باندې بینه قائم کړل.او دا ئې ثابت کړو.نود بینه په رنړاکې چې کله قاضی فیصله ورکړله.نو په فیصله ور کاوه سره د قابض د دعوې انکار لرې شو.اوهرکله چې د قابض انکار لرې شو.نوددې لازم یعنی خیانت هم لرې شو.او هرکله چې خیانت لرې شو.نو نصف کور دده په قبضه کې په پرېښولو کې هم څه باك پاتې نشو.او په راروانه زمانه کې د قابض د اړخه انکار موجودکیدل په ښکاره معدوم دی.ځکه چې ددې واقعې حال قاضی او قابض دواړو ته معلوم دی.اودا واقعه په فائل کې لیکلې شوې هم ده.نو په ښکاره اُمید هم دادې.چه قابض به راروانه موده کې ددې انکار کولو سره به د خپل ځان لپاره نور د رسوا کاوه سامان نه پیدا کوی.نوکله چې د قابض راروانه زمانه کې په ښکاره د دعوې نه انکار کول معدوم دی.نو نصف کور دده په قبضه کې پرېښول هیڅ مضر نه دی.

**د غائب وارث په موجودګئ کښې د منقوله مال په میراث کښې د تقسیمولو حکم**

وَلَوْ كَانَتِ الدَّعْوَى فِي مَنْقُولٍ او که دعوه په مال منقول کې وی. فَقَدْ قِيلَ يُؤْخَذُ مِنْهُ بِالْإِتِّفَاقِ نو وئیلی شوی دی.چه بالاتفاق به د قابض نه پاته مال اخستې شی. لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الْحِفْظِ وَالنَّزْعُ أَبْلَغُ فِيهِ ځکه چې په مال منقول کې د ساتنه اړتیا دې.او( د قبضې نه) په راوښکلو کې ساتنه زیات دې.

حل اللغة: ① منقول -کوم څیزچه نقل کیداې شی-② یوخذ-اخستې شی-③ یحتاج-حاجت پیدا کیږی-④ النزع-وتل

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.که دعوه په مال منقول کې وی.یعنی مال منقول د یوکس په قبضه کې وی.او دوهم کس بینه پیش کړل چه زما پلار مړشوې دې.اوهغه دا مال زما اوزما د غائب رور لپاره میراث پرېښودې دې.نو قاضی به د نصف مال فیصله ددې د مدعی لپاره کوی.اود بعض حضراتو مشائخو په نیز به پاته نصف مال هم بالاتفاق د قابض نه اخستلې شی.او یو امین سړی ته به ورکولې شی.ځکه چې په مال منقول کې ساتنه ضروری دې.په دې طریقه چې دا پخپله د محفوظ نه کیدلو په وجه د یومحل نه دوهم محل اړخ ته منتقل کیدلې شی.اود قابض د قبضې نه په اوښکلوکې زیات ساتنه دې.ځکه کله چې ده د مدعی د دعوې نه انکار اوکړو.اودا ئې وئیل چه زما په قبضه کې د مړی هیڅ مال نشته.نو خیانت ئې اوکړو.یا دا خپل ملك ګنړلو سره په دې کې



تصرف هم کولې شی. خوکله چې قاضی دده د قبضې نه اوښکلو.اود یو امین سړی په قبضه کې ورکړو.اوپه ښکاره دا امین سړې عادل هم دې.نودا مال محفوظ شو.نود ساتنه په لحاظ پاته نصف مال به هم د قابض د قبضې نه اخستلې شی.

بِخِلَافِ الْعَقَارِ لِأَنَّهَا مُحَصَّنَةٌ بِنَفْسِهَا په خلاف د غیرمنقوله جائیداد،چه دا پخپله محفوظ دې. وَلِهَذَا يَمْلِكُ الْوَصِيُّ بَيْعَ الْمَنْقُولِ عَلَى الْكَبِيرِ الْغَائِبِ اوهم په دې وجه د مړی وصی په بالغ غائب وارث باندې د منقول د بیع مالك دې. دُونَ الْعَقَارِ د غیرمنقوله جائیداد د بیع مالك نه دې.

حل اللغة: ① العقار-مځکه -② محصنة-محفوظ-③ یملک -مالك کیږی-④ الکبیر-لوئې \ غټ

تشریح:- په خلاف دغیرمنقوله جائیداد چې دا پخپله محفوظ دې.په دې کې د غصب او غلا هیڅ احتمال نشته.په دې وجه ددې د قابض په قبضه کې پرېښولو کې هیڅ باك نشته.چونکه منقول مال د ساتنه زیات محتاج دې.په دې وجه د مړی وصی ته دا اختیار حاصل دې.چه دې د مړی د بالغ وارث چې غائب دې.دهغه سومه برخه چې مال منقول سره متعلق ده.هغه وپلوری .که وصی خرڅه کړله.نو دده دا بیع به په بالغ وارث (چې غائب دې) باندې نافذ وی.اود غیرمنقول مال بیع وصی ته اختیار نشته.ځکه چې غیرمنقول جائیداد چونکه پخپله محفوظ دې.په دې وجه ددې د خرڅولو هیڅ اړتیا نشته.او مال منقوله چونکه پخپله محفوظ نه دې.په دې وجه به دا خرڅولې شی.او ددې د رقم ساتنه به کولې شی.

وَكَذَا حُكْمُ وَصِيِّ الْأُمِّ وَالْأَخِ وَالْعَمِّ عَلَى الصَّغِيرِ هم دا حکم د مور، رور ،اود اکا (تره) د وصی د نابالغ وارث په حق کې دې.

حل اللغة: ① الوصی -هغه کس چا لپاره چې مړی وصیت کړې وی-② الام-مور-③ الاخ-ورور

تشریح:- دغه ډول د مور وصی،یا د رور وصی،یا د اکا (تره) وصی د نا بالغ وارث مال منقول خرڅولې شی.حالانکه د مور،رور،او اکا (تره) وصی ته د تصرف اختیار نه وی.بلکه صرف د ساتنه اختیار وی.خوچونکه مال منقول خرڅول،د ساتنه یوه طریقه ده.په دې وجه ددوی وصی ته د نابالغ وارث د مال منقول خرڅولو اجازت ورکړې شوې دې.

وَقِيلَ الْمَنْقُولُ عَلَى الْخِلَافِ أَيْضًا او وئیلی شوی دی.چه دا مال منقول هم مختلف فیه دې.

تشریح:- بعض مشائخ رحمهم الله فرمائی.چه د غیرمنقول مال پشان په مال منقول کې هم اختلاف دې.چه د صاحبینو رحمهما الله په نیز که قابض منکرشوې وی.نو په دعوه ثابتیدلو باندې به نصف مال منقول مدعی ته ورکولې شی.او پاته نصف به هم د قابض د قبضې نه اوښکلې شی.اود یو امین سړی سره به ایخودلې شی.اود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په مال منقول کې به هم پاته نصف د قابض په قبضه کې پریخودلې شی.

وَقَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِيهِ أَظْهَرُ اود منقول په صورت کې د امام ابوحنیفه رحمه الله قول زیات ښکاره دې. لِحَاجَتِهِ إِلَى الْحِفْظِ ځکه چې منقول مال د ساتنه زیات محتاج دې.

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د منقول په صورت کې داامام ابوحنیفه رحمه الله قول زیات ښکاره دې. ځکه چې په منقول کې د ساتنه زیات اړتیا دې.دښکاره کیدلو مطلب دادې. چې د صاحبینو رحمهما الله د قول نه د امام ابوحنیفه رحمه الله قول زیات واضح دې.ځکه چې نصف مال د قابض په قبضه کې د پرېښولو په صورت کې ساتنه زیات مکمل دې.په نسبت ددې،چه دده د قبضې نه اوښکلې شی.اود یو امین سړی په قبضه کې کیخودې شی.ځکه چې مال د قابض سره صورةً او معنیً دواړه شان محفوظ دې.ځکه که مال دده سره هلاك شو.نو په ده به ضمان واجب وی.او ضمان به ځکه واجب وی.چه قابض د مدعی د دعوې نه د انکار په وجه ضامن شوې دې.اوکه د قابض نه واخستلې شو.اود یو امین سړی سره کیخودلې شو.نودا مال به معنی محفوظ نه وی.ځکه چې د هلاکیدلو په صورت کې په امین باندې ضمان نه واجبیږی.حاصل داچه نصف مال د قابض سره په هرصورت کې محفوظ

دي.که هلاك شي.اوکه هلاك نشي.او امين سره د نه هلاکیدلو په صورت کي اګرچه محفوظ دي.خود هلاکیدلو په صورت کي قطعاً محفوظ نه دي.اود حضرت امام صاحب ﵀ قول دادي.چه نصف مال د قابض په قبضه کي پرینبودي شي.په دي وجه د امام صاحب ﵀ قول د صاحبینو ﵀ د قول نه زيات واضح دي.

> **وَإِنَّمَا لَا يُؤْخَذُ الْكَفِيلُ** او کفیل به نشي اخستي. **لِأَنَّهُ إِنْشَاءُ خُصُومَةٍ** ځکه چي کفیل اخستل خصومت پیدا کول دي. **وَالْقَاضِي إِنَّمَا نُصِبَ لِقَطْعِهَا لَا لِإِنْشَائِهَا** حالانکه قاضي د خصومت قطع کاوه لپاره مقرر دي.د خصومت پیدا کاوه لپاره (مقرر) نه دي.

**حل اللغة:** ① **یوخذ** -اخستې به شي-② **انشاء** -پیدا کول-③ **خصومة**-جګړه -④ **القطع**-ختمول

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﵀ فرمائي.په متن کي چي دا اووئیلي شو.چه د قابض څخه به کفیل نشي اخستي.ددي دلیل دادي.چه د کفیل اخستل جګړه پیدا کول دي.ځکه چي قابض به د کفیل ور کاوه نه انکار کوي.او قاضي به دده نه مطالبه کوي.نوجګړه به پیدا کیږي.حالانکه قاضي د جګړي پیدا کاوه لپاره نه مقرر کیږي.بلکه د جګړي ختمولو لپاره مقرر کولې شي.

### د غائب وارث په حاضریدلو سره دوباره د بینه پیش کولو حکم

> **وَإِذَا حَضَرَ الْغَائِبُ لَا يَحْتَاجُ إِلَى إِعَادَةِ الْبَيِّنَةِ** اوکله چي غائب وارث حاضر شي.نو دده لپاره دوباره بینه پیش کاوه ارتیا نشته. **وَيُسَلَّمُ النِّصْفُ إِلَيْهِ بِذَلِكَ الْقَضَاءِ** او پاته نصف کور به ده ته په هم هغه حکم قضاء سره سپارلي شي.

**حل اللغة:** ① **حضر**-حاضر شي-② **لایحتاج** -حاجت نشته-③ **اعادة** -راګرځول-④ **القضاء**-فیصله

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﵀ فرمائي.وراندي تیرشوي دي.که یوکور د یو سړي په قبضه کي وي.او دوه سړي بینه پیش کړل.چه دا کور زما د مرحوم پلار دي.هغه زما اوزما د غائب رور لپاره میراث پرینبودي دي.نو قاضي به د نصف کور فیصله د مدعي لپاره کوي.او نصف به ده ته ورکړي.او پاته نصف به د غائب راتلو پوري د قابض په قبضه کي وي.نو کله چي دا غائب وارث راشي.نود خپل حق ثابتولو لپاره به د بعض حضراتو د قول مطابق په غائب باندي د حاضریدلو نه روسته بینه پیش کول ضروري وي.

> **لِأَنَّ أَحَدَ الْوَرَثَةِ يَنْتَصِبُ خَصْمًا عَنِ الْبَاقِينَ** دلیل دا دي چي په وارثانوکي یو وارث هم د پاته د ارخه په هرهغه معامله کي خصم کیږي. **فِيمَا يَسْتَحِقُّ لَهُ وَعَلَيْهِ دَيْنًا كَانَ أَوْ عَيْنًا** کوم چي دده لپاره حق ثابت وي.یا په ده باندي ثابت وي.که دین وي.اوکه عین وي.

**حل اللغة:** ① **ینتصب** -اودریږي-② **خصم**-جګړه کونکي-③ **یستحق**-استحقاق راتلې شي-④ **دین**-قرض

**تشریح:-** دلیل دا دي مدعي چي کوم بینه پیش کړي وو.هغه خاص طور باندي هم دهغه لپاره وو.نودا غائب به د خپل حق ثابتولو لپاره دوباره بینه پیش کوي.

> **لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ لَهُ وَعَلَيْهِ إِنَّمَا هُوَ الْمَيِّتُ فِي الْحَقِيقَةِ** دلیل دا دي دچا لپاره چي حکم قضاء وي.هغه په حقیقت کي مړي دي. **وَوَاحِدٌ مِنَ الْوَرَثَةِ يَصْلُحُ خَلِيفَةً عَنْهُ فِي ذَلِكَ** او په وارثانوکي یو وارث هم په دي معامله کي د مړي د ارخه خلیفه کیداي شي.

**تشریح:-** مصنف د هدایه ﵀ فرمائي.چه غائب له د قابض نه د خپلي برخي (حصي) اخستلو لپاره د بینه پیش کاوه هیڅ ارتیا نشته.بلکه د قاضي د تیري شوي فیصلي په نتیجه کي به نصف کور دي غائب ته د حاضریدلو نه روسته ورکولي شي.ځکه چي د حاضر مدعي بینه پخپله دده لپاره هم وو.اودده د غائب رور لپاره هم وو.خوکه دا اووئیلي شي.چه د غائب د ارخه نه خو دعوه شته.او نه خصم موجود دي.نود حاضر مدعي پیش شوي بینه به د غائب د ارخه څنګه معتبر وي؟ نو ددي خواب دادي.چه په وارثانو کي یو وارث د پاته وارثانو د ارخه په هرهغه معامله کي خصم جوړیږي.په کوم کي چي د مړي لپاره یا په مړي باندي کوم حق ثابت وي.اوکوم حق چي د مړي یا په مړي باندي ثابت وي.که هغه دین وي.اوکه مال معین وي.یعني که د یو وارث په موجودګئ کي د مړي



لپاره کوم حق ثابت شو.یا په مړي باندي د چا څه حق ثابت شو.نودا حکم قضاء به په ټولو وارثانو باندي نافذ وي.یعني که د مړي لپاره کوم حق ثابت شوي دي.نود مړي وارثان به په دي کي شریك وي.اوکه په مړي باندي حق ثابت شو.نو وارثان به ددي په ادا کاوه کي شریك وي.ګویا چي واره وارثان حاضر دي.یعني حاضر وارث به د ټولو وارثانو د ارخه قائم مقام وي.نو هرکله چي یو وارث د پاته ټولو وارثانو د ارخه خصم جوړیږي.نو په ذکرشوي مسئله کي به حاضر مدعي د خپل غائب رور د ارخه خصم وي.او دده پیش شوي بینه لکه څنګه چي پخپله دده د ارخه معتبر دي.دغه ډول به دده د غائب رور د ارخه هم معتبر وي.اوهر کله چي دحاضر مدعي پیش شوي بینه دده د غائب رور د ارخه معتبر دي.نود حاضریدلو نه روسته به په هغه باندي دوباره بینه پیش کول هم ضروري نه وي.

> **بِخِلَافِ الِاسْتِيفَاءِ لِنَفْسِهِ** په خلاف د خپل ذات لپاره د حق حاصلولو ، **لِأَنَّهُ عَامِلٌ فِيهِ لِنَفْسِهِ فَلَا يَصْلُحُ نَائِبًا عَنْ غَيْرِهِ** ځکه چي په دي کي دي د خپل ذات لپاره کار کوي.نودي دخپل ځان نه علاوه ارخ نه نائب نشي کیدي. **وَلِهَذَا لَا يَسْتَوْفِي إِلَّا نَصِيبَهُ** په دي وجه حاضر مدعي صرف پخپله برخه باندي قبضه کولي شي. **وَصَارَ كَمَا إِذَا قَامَتِ الْبَيِّنَةُ بِدَيْنِ الْمَيِّتِ** او داسي شوه.لکه چي د مړي په قرضه باندي ګواهان قائم شو.

**حل اللغة:** ① **الاستیفاء** -حاصلول-② **عامل**-کار کونکي-③ **نصیب**-حصه-④ **البینة**-ګواهان

**تشریح:-** پاتي شوه دا خبره چي یو وارث د پاته وارثانو د ارخه څنګه خصم کیداي شي؟ نو ددي خواب دادي.چه د چا لپاره قاضي فیصله ورکړله.یا په چا باندي قاضي فیصله ورکړله.هغه په حقیقت کي مړي دي.او یو وراث په دي معامله کي د مړي د ارخه خلیفه او نائب کیداي شي.نو په ذکرشوي مسئله کي د حاضر دعوه او بینه سره قابض باندي د کور فیصله په حقیقت کي مړي لپاره شوي ده.یعني قاضي دا فیصله ورکړي ده.چه دا کور د مړي دي.اوهرکله چي کور د مړي لپاره کیدل ثابت شو.نودا کور به د حاضر او غائب دواړو لپاره وي.ځکه چي دواړه د مړي وارثان دي.نوهرکله چي په یوه فیصله کي د حاضر او غائب دواړو لپاره د کورحق ثابت شو.نود غائب لپاره دخپل حق جلا ثابتولو هیڅ ارتیا نشته.

> **إِلَّا أَنَّهُ إِنَّمَا يَثْبُتُ اسْتِحْقَاقُ الْكُلِّ عَلَى أَحَدِ الْوَرَثَةِ إِذَا كَانَ الْكُلُّ فِي يَدِهِ.** مګر داچه د کُل مال استحقاق به صرف د یو وارث لپاره هغه وخت وي.کله چي کُل ترکه هم ددي (حاضر) وارث په قبضه کي وي. **ذَكَرَهُ فِي الْجَامِعِ** دا په جامع کبیر کي ذکرشوي دي.

**تشریح:-** په دي عبارت سره د یو سوال خواب دي.سوال دادي.چه تاسو اوفرمائیل.چه یو وارث د مړي د ارخه خلیفه کیداي شي.نوکه یو وراث د مړي د ارخه خلیفه کیدل صحیح دي.نودا یو وارث د مړي مثل اود هغه قائم مقام شو..اود مړي لپاره په کور باندي قبضه کول جائز دي.نود قائم مقام کیدلو په وجه یو وارث ته هم د پوره کور اخستل جائز کیدل پکار دي.حالانکه دا بالاجماع دده د برخي (حصي) نه علاوه ته نشي ورکیدلي؟
خواب·ددي خواب دادي.چه حاضر وارث پخپله برخه باندي د قبضي کاوه په صورت کي د خپل ذات لپاره کار کوي.د مړي لپاره نه کوي.اوهرکله چي د خپل ذات لپاره کار کوي.نودي به د خپل ځان نه علاوه لپاره نائب نه وي.هم دا وجه ده.چه مدعي یعني حاضر وارث صرف پخپله برخه باندي قبضه کولي شي.اودا داسي شوه.لکه چي یو وراث د مړي په قرضه باندي ګواهان ثابت کړل یعني یو وارث په یو سړي باندي په بینه سره د مړي قرضه ثابت کړله.نو قاضي به په مدعی علیه باندي اګرچه د پوره پور فیصله کوي.خو مدعي وارث به د هغي نه صرف خپله برخه وصولولي شي.دغه ډول دلته کي هم د مدعي یعني د حاضر وارث بینه په وجه قاضي اګرچه د پوره کور فیصله کړي ده.خوحاضر وارث به د هغي نه صرف خپله برخه وصول کوي.اود غائب وارث د برخي (حصي) د وصولولو اجازت به نه وي.

> **لِأَنَّهُ لَا يَكُونُ خَصْمًا بِدُونِ الْيَدِ** دلیل دا دي چي حاضر وارث د قبضي خصم نشي کیدي. **فَيَقْتَصِرُ الْقَضَاءُ عَلَى مَا فِي يَدِهِ** نو حکم قضاء به هم په هغه مال باندي منحصر وي.په څومره اندازه چي دده په قبضه کي دي.

تشریح:- دا عبارت د ﴿لأن أحد الورثة ينتصب خصماً عن الباقين...الخ﴾ نه استثناء ده.یعنی یو وارث په هرهغه معامله کي په کومه کي چې مړي لپاره استحقاق وی.یا په مړی باندې استحقاق وی.د پاتـه وارثانو د اړخه خصم کیدای شي.یعنی قاضي چې کله د مړي لپاره د یوحق یا په مړي باندې دکوم حق فیصله ورکوی.نودا فیصله به په ټولو وارثانو باندې نافذ وی.خودا هغه وخت دی.کله چې د مړي پوره ترکه (مال میراث) ددې حاضر وارث په قبضه کې وی.تردې که د حاضر وارث په قبضه کي څه مال د ترکې وی.نود قاضي فیصله به په دې حاضر وارث باندې ددې په اندازه نافذ کولې شي.ځکه چې د قبضه نه بغیر هیڅ شئ؛ خصم نشي کیدې.نود قاضي فیصله به هم په دې اندازه مال باندې منحصر وی.په څومره اندازه چې د حاضر په قبضه کي د مړي ترکه ده.دا په جامع صغیرکي ذکر دی.

## په مال صدقه کولوکښې به د مال مصداق کوم مال وي؟

قَالَ وَمَنْ قَالَ مَالِي فِي الْمَسَاكِينِ صَدَقَةٌ وکوم سړی چې اووئیل.چه زما مال په مسکینانو باندې صدقه دې. فَهُوَ عَلَى مَا فِيهِ الزَّكَاةُ نودا د مال لفظ به په هرداسې مال باندې واقع وی.په کوم کي چې زکاة واجبیږي. وَإِنْ أَوْصَى بِثُلُثِ مَالِهِ فَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ اوکه ده دخپل د دریمې برخې (حصې) وصیت اوکړو.نودا وصیت به د مال په دریمه برخه کي واقع کیږی.

تشریح:- په دې عبارت کي دوې (دوه) مسئلې ذکر دی.① یوسړی اووئیل.چه زما مال په مسکینانو باندې صدقه دې.نو په ده باندې دده مملوکه هغه تمام مالونه صدقه کول واجب دی.د کومو مالونو په جنس کي چې زکاة واجبیږي.مثلاً سره زر، سپین زر، سائمه (څریدونکي) څاری،د تجارت مالونه.که دا مالونه د نصاب اندازې ته رسیدلې وی.اوکه نه وی رسیدلې.ځکه چې د زکاة دمال جنس معتبر دې.د مال زکاة مقدار معتبر نه دې.اود مال زکاة د جنس نه چې څنګه د نصاب په اندازه کیږی.دغه ډول د نصاب نه کم هم کیږی.هم دا وجه ده.که یوکس خپل پوره مال د صدقې نذر کړو.او په ده باندې دومره قرضه وی.چه دده پوره مال احاطه کوی.نو بیا به هم په ده باندې پوره مال صدقه کول لازم وی.دا خیال ساتل پکار دی.چه پوره مال د صدقه کاوه د نذر په صورت کي چې کله پوره مال صدقه کړی.نود خپلې ګزارې په اندازه دې ځان سره پریږدی.بیاچه کله څه مال حاصل شي.نو په څومره اندازه مال نې چې ځان سره ساتلې وو.د هغې په اندازه دې صدقه کړی.② اوکه د خپل مال دریمې برخې (حصې) وصیت نې اوکړو.نودا وصیت به د هرڅیز په دریمه باندې واقع کیږی.که دا مال د زکاة د جنس څنې وی.اوکه د مال زکاة دجنس څنې نه وی.لکه مځکه ،د خدمت غلامان،اود کور د استعمال سامان.

وَالْقِيَاسُ أَنْ يَلْزَمَهُ التَّصَدُّقُ بِالْكُلِّ،او قیاس دادې.چه په ده به (د صدقه په صورت کي هم) کُل مال صدقه کول واجب وی. وَبِهِ قَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ لِعُمُومِ اسْمِ الْمَالِ كَمَا فِي الْوَصِيَّةِ امام زفر ؒ هم ددې قائل دې.ځکه چې د مال لفظ عام دې.لکه څنګه چې د وصیت په صورت کي دی

تشریح:- د قیاس تقاضا داده.چه لکه څنګه وصیت د هرڅیز په دریمه برخه باندې واقع کیږی.دغه ډول پوره مال د صدقه کاوه د نذر په صورت کي به هم د هرقسمه مال صدقه کول واجب وی.که مال زکاة وی.اوکه بل ډول مال وی.امام زفر ؒ هم ددې قائل دې.د حضرت امام شافعی ؒ مذهب هم دادې.

د امام زفر ؒ دلیل دادې.چه ﴿مالي في المساكين صدقة﴾ کي لفظ د مال عام دې.که په دې کي زکاة واجبیږي.اوکه زکاة نه واجبیږي.نو کله چې لفظ د مال عام دې.نو هرقسمه مال صدقه کول به واجب وی.لکه څنګه چې د وصیت په صورت کي لفظ مال هرقسمه مال ته ګډ دی.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ إِيجَابَ الْعَبْدِ مُعْتَبَرٌ بِإِيجَابِ اللَّهِ تَعَالَى اود استحسان وجه داده.چه د بنده پخپل ځان باندې د نذر په ذریعه واجبول، دالله تعالی واجبولو باندې معتبر دی. فَيَنْصَرِفُ إِيجَابُهُ إِلَى مَا أَوْجَبَ الشَّارِعُ فِيهِ الصَّدَقَةَ مِنَ الْمَالِ نود بنده واجبول به هغه مال اړخ ته راجع کیږی په کوم مال کي چې شریعت صدقه واجب کړې ده.



تشریح:- د امام زفر نه علاوه د جمهورو احنافو دلیل استحسان دې.هغه داسې چې د بنده پخپل ځان باندې واجبول په د الله تعالی په واجبولو باندې قیاس کولې شي.یعنی بنده ته په ابتداء کي خپل ځان باندې د واجبولو ولایت نشته.بلکه په شریعت باندې قیاس کاوه سره د واجبولو ولایت شته.یعنی په کوم ځائې کي چې د شریعت د اړخه واجبول اوموندې شي.هلته کي بنده هم پخپله خپل ځان باندې واجبولې شي.او په کوم ځائې کي چې د شریعت د اړخه واجبول ثابت نه وی.هلته کي پخپله بنده هم خپل ځان باندې د واجبولو حقدار نه دې.نوهرکله چې دا خبره ده.نود بنده په نذر ﴿مالي في المساكين صدقة﴾ سره به دهغه مال صدقه کول واجب وی.په کوم مال کي چې شریعت اسلام صدقه (زکاة) نه دې واجب کړې.بلکه په مخصوص مالونوکي نې واجب کړې دې.نو په کومو خاصو مالونوکي چې شریعت زکاة واجب کړې دې.د بنده نذر ﴿مالي في المساكين صدقة﴾ سره به هم په دغه خاصو مالونوکي صدقه کول واجب وی.هرقسمه مال صدقه کول به واجب نه وی.

أَمَّا الْوَصِيَّةُ فَأُخْتُ الْمِيرَاثِ لِأَنَّهَا خِلَافَةٌ پاتې شو وصیت،نو دا د میراث خور ده.ځکه چې وصیت هم د میراث پشان خلافت دې. كَهِيَ فَلَا يَخْتَصُّ بِمَالٍ دُونَ مَالٍ ځکه به دا یو مال سره مخصوص وی.بل سره به (مخصوص) نه وی.

حل اللغة: ① اخت-خور-② خلافة-خلیفه-③ لاتختص-نشي خاص کولې-④ دون-سوا\بل

تشریح:- او پاتې شو وصیت،نودا د میراث خور یعنی مثال دې.ځکه چې لکه څنګه میراث د مورث د مرګ نه روسته ثابتیږی.اود وارثانو د پاره د مورث د مرګ نه روسته ملك ثابتوی.دغه ډول وصیت هم د موصی د مرګ نه روسته نافذ کیږی.او وصیت د موصی له لپاره د موصی د مرګ نه روسته ملك ثابتوی.بهرحال وصیت د میراث مثال دې.او میراث د هیڅ مال سره نه مختص کیږی.بلکه هرقسمه مال کي جاری کیږی. نو هم دغه ډول وصیت هم د هیڅ مال سره نه مختص کیږی.بلکه هرقسمه مال کي نافذ کیږی.

وَلِأَنَّ الظَّاهِرَ الْتِزَامُ الصَّدَقَةِ مِنْ فَاضِلِ مَالِهِ وَهُوَ مَالُ الزَّكَاةِ،اوځکه ښکاره ده.چه ده پخپل زیاتی مال کي صدقه لازم کړې ده.او هغه د زکاة مال دې. أَمَّا الْوَصِيَّةُ تَقَعُ فِي حَالِ الِاسْتِغْنَاءِ فَيَنْصَرِفُ إِلَى الْكُلِّ او پاتې شو وصیت،نودا د فقیرۍ په حالت کي واقع کیږی.نو کل مال اړخ ته به راجع وی.

حل اللغة: ① التزام -ضروری کول-② قطع-کټ شو-③ الاستغناء-فقیری-④ ینصرف-ګرځولې به شي

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه د نذرکونکي ښکاره حالت په دې خبره باندې دلالت کوی.چه ده به پخپل ځان باندې د زیاتی مال صدقه کول لازم کړی وی.ځکه چې انسان پخپل ژوند کي ډیر ضروری حاجتونو اړخ ته محتاج وی.نو ښکاره هم دا ده.چه کوم مال د حوائج اصلیه څنې وی.د هغې صدقه کول به نې لازم کړې نه وی.بلکه د زیاتی مال صدقه کول به نې لازم کړې وی.او زیاتی مال، مال زکاة دې.نود پوره مال صدقه کاوه د نذر په صورت کي به اموال زکاة صدقه کول واجب وی.اوکوم مالونه چې د زکاة د جنس څنې نه وی.د هغې صدقه کول به واجب نه وی.او پاتې شو وصیت،نودا هغه وخت واقع کیږی.کله چې انسان د مال نه مستغنی کیږی.یعنی وصیت د سړی د مرګ نه روسته واقع کیږی.اود مرګ نه روسته ده ته د مال هیڅ حاجت نه پاتې کیږی.په دې وجه وصیت هرقسمه مال باندې واقع کیږی.کوم خاص ډول مال سره به خاص نه وی.

وَتَدْخُلُ فِيهِ الْأَرْضُ الْعُشْرِيَّةُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابویوسف ؒ په نیز به په دې نذرکي عشری مځکه هم داخل وی. لِأَنَّهَا سَبَبُ الصَّدَقَةِ،ځکه چې دا هم د صدقې سبب دې. إِذْ جِهَةُ الصَّدَقَةِ فِي الْعُشْرِيَّةِ رَاجِحَةٌ عِنْدَهُ ځکه چې د امام ابویوسف ؒ په نیز په عشرکي د صدقه اړخ راجح دې.

حل اللغة: ① الارض -مځکه -② راجحة-راجحه؛غوره-③ المؤنة-مشقت-④ جهة-طرف\اړخ

تشریح:- حضرت امام ابویوسف ؒ فرمائی.چه عشری مځکه هم ﴿مالي في المساكين صدقة﴾ په نذرکي داخلیږی.یعنی که یوکس د خپل مال صدقه کاوه نذر اوکړو.نو اموال زکاة سره به عشری مځکه صدقه کول هم واجب وی.ځکه چې عشری مځکه هم د صدقې (عشر) سبب دې.او عشری مځکه د صدقې سبب ځکه دې.چه د

امام ابویوسف رحمه الله په نیز په عشرکي د صدقې اړخ راجح دی.نو عشري مځکه د اموال تجارت پشان شوه.ځکه چې عشري مځکه د هغه مالونو د جنس څخه ده.په کوم کي چې صدقه واجبیږي.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا تَدْخُلُ (¹)او د امام محمد رحمه الله په نیز نه داخلیږي. لِأَنَّهَا سَبَبُ الْمُؤْنَةِ، ځکه چې د مؤونت سبب دی. إِذْ جِهَةُ الْمُؤْنَةِ رَاجِحَةٌ عِنْدَهُ ځکه چې د امام محمد رحمه الله په نیز (په عشرکي) د مؤونت اړخ راجح دی.

**تشریح:**- د امام محمد رحمه الله په نیز عشري مځکه په ذکرشوي نذرکي نه داخلیږي.یعني «مالي في المساکين صدقة» د نذر په وجه عشري مځکه صدقه کول واجب نه وي.د امام ابوحنیفه رحمه الله هم دا قول دی.ځکه چې عشري مځکه د مؤونت سبب دی.(مؤونت هغه شئ دی.کوم چې په سري باندې د غیر لپاره واجب وي.او د هغه د پاته کیدلو سبب وي)او د مؤونت سبب ځکه دی.چه د امام محمد رحمه الله په نیز په عشرکي د مؤونت اړخ راجح دی.نو عشري مځکه د خدمت د غلامانو پشان شوه.او د خدمت غلامان چونکه د مال صدقه کاوه په نذرکي داخل نه دی.په دې وجه عشري مځکه به هم په ذکرشوي نذر کي داخل نه وي.

وَلَا تَدْخُلُ أَرْضُ الْخَرَاجِ بِالْإِجْمَاعِ لِأَنَّهُ يَتَمَحَّضُ مُؤْنَةً او خراجي مځکه به بالاتفاق داخل نه وي.ځکه چې دا صرف مؤونت دی.

**حل اللغة:** ① يتمحض -صرف\خاص- ② يتناول -شامليږي- ③ النوادر -نادر روایات- ④ لايجوز -نه ده جائز

**تشریح:**- او خراجي مځکه به بالاتفاق «مالي في المساکين صدقة» په نذرکي داخل نه وي.ځکه چې خراج خالصه مؤونت دی.ځکه چې د خراج مصرف د خدائي دشمنانو سره قتال کونکي دی. حالانکه په قتال کونکوکي مالداره هم وي.نو معلومه شوه.چه خراج خالص مؤونت دی.په دې کي د صدقې معنی نه موندې کیږي.

### د کوم څیز چې زه مالک یم هغه دې صدقه وي نو مصداق به کوم مال وي؟

وَلَوْ قَالَ مَا أَمْلِكُهُ صَدَقَةٌ فِي الْمَسَاكِينِ اوکه ده اوونیل.چه د کوم شئ زه مالک یم.هغه په مسکینانو باندې صدقه دی. فَقَدْ قِيلَ يَتَنَاوَلُ كُلَّ مَالٍ نو ونیلی شوی دی.چه دا هرمال ته ګډ دی. لِأَنَّهُ أَعَمُّ مِنْ لَفْظِ الْمَالِ ځکه چې د ملک لفظ د مال د لفظ نه عام دی.

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادی.که یوکس اوونیل. «ما أملکه صدقة فالمساکين» یعني د کوم شئ چې زه مالک یم.هغه په مسکینانو باندې صدقه دی.نو په دې اړه کي بعض مشائخ فرمائي.چه د نذرکونکي داکلام هرقسمه مال ته ګډ دی.که دا مال د زکاة وي.اوکه د زکاة مال نه وي.یعني په دې کلام سره د نذر کاوه په صورت کي به هرقسمه مال صدقه کول واجب وي.مال د زکاة هم،او د غیرزکاة مال هم.
دلیل دادی.چه لفظ د ملك د لفظ مال نه عام دی.ځکه چې لفظ د مال صرف مال باندې ونیلې شي.په غیرمال باندې نشي ونیلې.او لفظ د ملك په مال او غیرمال دواړو باندې ونیلې شي.مثلاً ملك نکاح، ملك قصاص، او ملك متعه باندې ونیلې شي.حالانکه نکاح، قصاص، او متعه د مال د قبیلې څخه نه دی.نو هرکله چې لفظ د ملك د لفظ مال نه عام دی.نو د «ما أملکه» زیات عموم ښکاره کاوه لپاره اموال غیرزکاة صدقه کول واجب دی.نو لفظ ملك چونکه د لفظ مال نه عام دی.په دې وجه د لفظ ملك عموم ښکاره کاوه لپاره اموال زکاة او اموال غیرزکاة دواړه صدقه کول واجب وي.

¹) القول الراجح هوهذا قول محمد رحمه الله كذا فى العناية (٤٣٧\٦) والكفاية (٤٣٧\٦) ومجمع الأنهر(٢٥١\٣) وشرح عقود (ص،٧١) نقلاً عن القول الراجح (١٢٤\٢)-



وَالْمُقَيَّدُ إِيجَابُ الشَّرْعِ وَهُوَ مُخْتَصٌّ بِلَفْظِ الْمَالِ او (د زکاة مال سره) مقید کونکې شرعي ایجاب دی.او هغه لفظ مال سره مختص دی. فَلَا مُخَصِّصَ فِي لَفْظِ الْمِلْكِ فَيَبْقَى عَلَى الْعُمُومِ اوپه لفظ د ملك کي هیڅ تخصیص کونکې نشته.نو لفظ دملك به په عموم باندې پاته وي.

**تشریح:**- په دې عبارت سره د یو سوال خواب دی.سوال دادی.چه هرکله په لفظ د مال سره د نذر کاوه په صورت کي د اموالو صدقه شرعاً اموال زکاة سره مقید او مختص دی.لکه څنګه چې په مخکښې مسئله کي تیرشو.نو په لفظ د ملك سره نذر کاوه په صورت کي هم اموال صدقه اموال زکاة سره مقید او مختص کیدل پکار وو؟
خواب•ددې خواب دادی.چه اموال صدقه اموال زکاة سره شریعت مقید او مختص کړې دی.اودا اختصاص لفظ د مال سره خاص دی.یعني شریعت اسلام د الله تعالی په قول ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ او د رسول الله ﷺ په قول «هاتوا ربع عشر اموالکم» په ذریعه زکاة فرض کړې دی.او په دې قرآن اوحدیث کي مذکور لفظ،،مال،، شریعت اموالو د زکاة سره خاص کړې دی.او په لفظ دملك کي هیڅ مخصص موجود نه دی.ځکه چې د الله تعالی د اړخه په دې انداز سره صدقه نه ده واجب شوې.چه صدقه لفظ ملك اړخ ته منسوب وي.او بیا اموال زکاة سره خاص وي.بهرحال په لفظ د ملك کي چې هرکله کوم مخصص موجود نه دی.نو لفظ د ملك به خپل عموم باندې پاته وي.او د «ما أملکه صدقة في المساکين» په ذریعه دنذر کاوه په صورت کي به اموال زکاة او اموال غیر زکاة واړه صدقه کول واجب وي.

وَالصَّحِيحُ أَنَّهُمَا سَوَاءٌ او صحیح داده.چه دواړه برابر دی. لِأَنَّ الْمُلْتَزَمَ بِاللَّفْظَيْنِ الْفَاضِلُ عَنِ الْحَاجَةِ عَلَى مَا مَرَّ ځکه چې دې په دواړه لفظونو سره هغه مال لازمونکې دی.کوم چې دده د حاجت نه زیاتی دی.لکه چې تیرشو.

**تشریح:**- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.صحیح داده.چه د لفظ مال او لفظ ملك دواړو حکم برابر دی.یعني لکه څنګه «مالي في المساکين صدقة» کي لفظ د مال اموال زکاة سره خاص دی.دغه شان «ما أملکه صدقة في المساکين» کي لفظ د مال اموال زکاة سره خاص دی.یعني په دواړه صورتونوکي صرف د اموال زکاة صدقه کول واجب دی.ځکه چې نذرکونکې خپل ځان باندې هغه مال لازم کړې دی.کوم چې دده د حاجت نه زیات دی.او د حاجت نه زیات مال زکاة وي.نو د اموال زکاة صدقه کول واجب دی.

ثُمَّ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ سِوَى مَا دَخَلَ تَحْتَ الْإِيجَابِ بیا کله چې دده سره هیڅ مال نه وي. علاوه د هغه مال نه کوم چې د نذر لاندې داخل شو. يُمْسِكُ مِنْ ذَلِكَ قُوتَهُ نو ددې څخه به د خپلې ګزارې برابر اوساتي. ثُمَّ إِذَا أَصَابَ شَيْئًا تَصَدَّقَ بِمِثْلِ مَا أَمْسَكَ بیا کله چې ده ته څه شئ حاصل شي.نوکوم څه ئې چې ساتلي وو.هغه دې صدقه کړي. لِأَنَّ حَاجَتَهُ هَذِهِ مُقَدَّمَةٌ ځکه چې (په صدقه باندې) دده دا حاجت مقدم دی.

**تشریح:**- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د پوره مال صدقه کاوه د نذر په صورت کي که نذرکونکې سره صرف هغه مال وي.چه دهغې صدقه کول ضروري دی.او هغه د نذر لاندې داخل دی.نو ددې څخه به د خپلې ګزارې مطابق اوساتي.ځکه چې د انسان حاجت په صدقه باندې مقدم دی.ځکه که ده پوره مال صدقه کړو.او خپل ځان سره ئې هیڅ اونه ساتل.نودې به په دغه ورځ د خپل اړتیا لپاره د خلګو نه سوال کوي.اودا ډیره بده خبره ده.چه سړې خپل پوره مال صدقه کړي.اوهم په دغه ورځ د خلګو نه سوال کول پیل کړي.ددې نه روسته چې کله کوم مال حاصل شي.نو څومره قدرې مال چې ده خپل ځان سره ساتلي وو.هم دهغې په اندازه دې صدقه کړي.

وَلَمْ يُقَدِّرْ مُحَمَّدٌ بِشَيْءٍ لِاخْتِلَافِ أَحْوَالِ النَّاسِ فِيهِ او امام محمد رحمه الله په هیڅ پورې د دې اندازه نه ده لګولې.ځکه چې په دې اړه کي د خلګو حالات مختلف دی.

**تشریح:-** علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.چه نذرکونکي به څومره قدرې مال خپل ځان سره ساتي.امام محمد ﷫ په مبسوط کي ددې صراحت نه دې فرمائیلې.ځکه چې د قلتِ عیال اود کثرتِ عیال په وجه په دې اړه کي د خلګو حالتونه مختلف دي.

**وَقِيلَ الْمُحْتَرِفُ يُمْسِكُ قُوتَهُ لِيَوْمٍ** او ویلی شوی دی.چه پیشه ور(روزګارکونکی) دې د یوې ورځې خرچه اوساتي. **وَصَاحِبُ الْغَلَّةِ لِشَهْرٍ** اود حاصلاتو والا(تنخواه دار) دې د یومیاشت، **وَصَاحِبُ الضِّيَاعِ لِسَنَةٍ** او د پټی والا(زمیندار) دې د یوکال اوساتي. **عَلَى حَسَبِ التَّفَاوُتِ فِي مُدَّةِ وُصُولِهِمْ إِلَى الْمَالِ**،(دا تفصیل) دوی ته د مال رسیدلو په موده کي د تفاوت په اعتبار سره دې. **وَعَلَى هَذَا صَاحِبُ التِّجَارَةِ يُمْسِكُ بِقَدْرِ مَا يَرْجِعُ إِلَيْهِ مَالُهُ** اوپه دې قول دې تجارت والا(سوداګر) په دومره اندازه اوساتي.په څومره موده کي چې دده مال واپس راشي.

**حل اللغة:** ① **المحترف** -کسب ګر-② **یوم**-ورځ-③ **قوت**-خرچه-④ **مدة**-موده

**تشریح:-** او بعض مشائخ فرمائي.چه پیشه ور،کاریګر او مزدورکار دې د یوې ورځې اخراجات پوره کاوه لپاره څه مال اوساتي.ځکه چې دې خلګو ته د ورځې ورځې آمدني راځي.نو په کومه ورځ ني چې صدقه کړې ده.د هغې ورځ د ګزارې مطابق دې اوساتي.بیا ددې نه روسته خو به انشاء الله آمدن پیل شي.او دچا چې ماهانه آمدني وي.مثلاً ملازم، کورونه په کرایه باندې ورکونکي،نودې به د یو میاشت په اندازه ایږدي.ځکه چې دوی ته د ورځې ورځې آمدن نه راځي.بلکه میاشت په میاشت کیږي.نود میاشت پوره کیدلو پورې د اخراجاتو په اندازه دې مال اوساتي.اود جائیداد مالك، یعنی د زمکې او باغ وغیره مالك دې د پوره کال لپاره ځان سره اوساتي.ځکه چې ده ته په پوره کال کي یو ځل آمدني کیږي.دا تفصیل د مال حاصلیدلو په تفاوت باندې دې.یعنی چاته چې په څومره موده کي د مال حاصلیدلو امید وي.د دومره مودې لپاره دې خپل ځان سره څه مال اوساتي.ددې قول په بناء باندې دې تاجر خپل ځان سره دومره اوساتي.په څومره موده کي چې دده مال واپس راشي.

### د وصي کیدلو علم نه کیدلو په صورت کښې د ترکي څه خیزخرڅولو او وصي کیدلو حکم

**قَالَ وَمَنْ أَوْصَى إِلَيْهِ وَلَمْ يَعْلَمْ الْوَصِيَّةَ** فرمائي.اوکه یوکس وصي مقرر کړې شو.حالانکه ده ته وصي کیدل معلوم نه وي. **حَتَّى بَاعَ شَيْئًا مِنَ التَّرِكَةِ فَهُوَ وَصِيٌّ وَالْبَيْعُ جَائِزٌ**، تردې چې ده د ترکه (مال میراث) نه څه شئ خرڅ کړو.نو دې وصي دې.او بیع جائز ده. **وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْوَكِيلِ حَتَّى يَعْلَمَ**[1] اود وکیل بیع جائز نه ده.تردې چې ده ته معلوم شي.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که یوکس وصي مقرر کړې شو.اوده ته خپل وصي کیدل معلوم نه وي.تردې چې ده د موصي د مرګ نه روسته د ترکې (مال میراث) نه څه شئ خرڅ کړو.نو دې وصي دې.اودده بیع جائز ده.اوکه یوکس څوك وکیل مقرر کړو.اوده ته خپل وکیل کیدل معلوم نشو.تردې چې ده د موکل څه شئ خرڅ کړو.نو دده بیع جائز نه ده.هم دا ظاهرالروایة دې.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ أَيْضًا** اود امام ابویوسف ﷫ نه روایت دې.چه په رومبی صورت کي هم جائز نه ده. **لِأَنَّ الْوِصَايَةَ إِنَابَةٌ بَعْدَ الْمَوْتِ** ځکه چې وصي کیدل د مرګ نه روسته قائم مقام کیدل دي. **فَتُعْتَبَرُ بِالْإِنَابَةِ قَبْلَهُ وَهِيَ الْوَكَالَةُ** نودا به د مرګ نه وړاندې په قائم مقام کیدلو باندې قیاس کولې شي.او هغه وکالت دې.

**حل اللغة:** ① **انابة**-نیابت-② **النظر**-مصلحت-③ **الاضافة**-نسبت-④ **التوقف**-موقوف کیدل

**تشریح:-** اوپه نوادر کي د امام ابویوسف ﷫ نه روایت دې.چه د وصیت په صورت کي هم د وصي کیدلو دعلم نه وړاندې د وصي بیع جائز نه ده.حضرت امام ابویوسف ﷫ د وصیت صورت د وکالت په صورت باندې قیاس کړې

[1]) القول الراجح هوهذا ظاهر الرواية كذا في فتح القدير (٤٣٨\٦) والعناية (٤٣٩\٦) ومنحة الخالق (٤٩\٧) الدرالمختار(٤٠٨\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٥٢\١٢)-



دې.ځکه لکه څنګه چې وصي کیدل د وصي د مرګ نه روسته نائب کیدل دي.دغه ډول وکیل کیدل د موکل په ژوند کي نائب کیدل دي.نولکه څنګه چې د وکیل تصرف د وکالت معلومیدلو نه وړاندې ناجائز دې.دغه ډول به د وصي تصرف د وصي کیدلو د علم نه وړاندې ناجائز وي.

**وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ أَنَّ الْوِصَايَةَ خِلَافَةٌ** او په ظاهرالروایة باندې وجه د توپیر داده.چه وصي کیدل خلیفه کیدل دي. **لِإِضَافَتِهَا إِلَى زَمَانِ بُطْلَانِ الْإِنَابَةِ** ځکه چې دا داسې زمانې اړخ ته منسوب کیږي.کوم وخت چې نائب کیدل باطل دي. **فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ كَمَا فِي تَصَرُّفِ الْوَارِثِ** نو وصي کیدل دده په معلوماتو باندې موقوف نه دي.لکه څنګه چې د وارث په تصرف کي دي.

**تشریح:-** د ظاهرالروایة په بنا (بنیاد) باندې د وصایا او وکالت مسئلو په منځ کي وجه د توپیر داده.چه وصي کیدل خلافت دې.نیابت نه دې.او وصي کیدل خلافت ځکه دې.چه وصي کیدل داسې زمانې اړخ ته منسوب کیږي.په کومه زمانه کي چې نائب جوړیدل باطل دي.یعني وصایه د موصي د مرګ نه روسته نافذ کیږي.حالانکه د چا دمرګ نه روسته د مړي بالکل اختیار نه وي.نو معلومه شوه.چه وصایه (وصي کیدل) خلافت دې.نیابت نه دې.او خلافت د تصرف په سلسله کي علم باندې موقوف نه وي.یعني خلیفه کیدل په دې خبره باندې موقوف نه دي.چه خلیفه ته دخپل خلیفه کیدلو علم هم وي.نو هرکله چې خلیفه کیدل دده په علم باندې موقوف نه دې.نوکه وصي د خپل وصي کیدلو د علم نه بغیر د بیع وغیره څه تصرف اوکړو.نودا تصرف به جائز وي.لکه مثلاً که وارث د مورث د مرګ نه روسته دده په ترکه کي څه تصرف اوکړو.مثلاً څه شئ ني خرڅ کړو.حالانکه ده ته د مورث د مرګ علم نشته.نود وارث دا تصرف جائز دې.نودغه ډول د خپل وصي کیدل معلومیدلو نه بغیر تصرف هم جائز دې.

**أَمَّا الْوَكَالَةُ فَإِنَابَةٌ لِقِيَامِ وِلَايَةِ الْمَنُوبِ عَنْهُ** هم دا وکالت خو هغه نیابت دې.ځکه چې د منوب عنه ولایت موجود نه دې. **فَيَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ**، نو وکیل کیدل دده په معلوماتو باندې موقوف دی. **وَهَذَا لِأَنَّهُ لَوْ تَوَقَّفَ لَا يَفُوتُ النَّظَرُ** اودا حکم ځکه دې.که وکالت د وکیل په معلوماتو باندې موقوف شي.نو هیڅ مصلحت به نه فوت کیږي. **لِقُدْرَةِ الْمُوَكِّلِ**،ځکه چې موکل قادر دې. **وَفِي الْأَوَّلِ يَفُوتُ لِعَجْزِ الْمُوصِي** او په اول کي به مصلحت فوت کیږي.ځکه چې موصي (میت) پخپله عاجز دې.

**تشریح:-** پاتې شو وکیل کیدل،نو دې د خپل موکل نائب وي.ځکه چې وکیل دچا نائب وي یعنی موکل،هغه بقید حیات او صاحب اختیار موجود دې.بهرحال وکالت،انابت یعنی نائب جوړول دي.او انابت په علم باندې موقوف وي.یعنی د نائب تصرف کاوه لپاره ضروري دي.چه ده ته د خپل نائب کیدلو علم هم وي.ځکه چې وکیل جوړول که د وکیل په علم باندې موقوف وي.نوپه دې صورت کي به هیڅ مصلحت نه فوت کیږي.ځکه چې موکل پخپله په تصرف باندې قادر دې.او وصي کیدل که دده په علم باندې موقوف وي.نو مصلحت به فوت شي.ځکه چې موصي (مړې) پخپله تصرف کاوه نه عاجز دې.په دې وجه وکالت پخپله د وکیل په علم باندې موقوف اوساتلې شو.او وصایه د وصي په علم باندې موصوف اونه ساتلې شو.

### د وکیل کیدلو علم نه کیدلو په صورت کښې د تصرف حکم

**وَمَنْ أَعْلَمَهُ مِنَ النَّاسِ بِالْوَكَالَةِ يَجُوزُ تَصَرُّفُهُ** اوکه په خلګ وکي یوکس دې په وکالت سره خبر کړو.نو دده تصرف جائز دې.

**تشریح:-** فاضل مصنف ﷫ فرمائي.هرکله چې دا ثابته شوه.چه د تصرف صحیح کیدلو لپاره وکیل ته د خپل وکیل کیدلو علم کیدل شرط دې.نو وکیل ته دده د وکیل کیدلو خبر ورکول ضروري دي.نوکله چې یو عاقل بالغ سړی وکیل ته خبر ورکړو.چه فلاني سړی ته خپل وکیل مقرر کړې یې.بیا هغه د موکل لپاره د اخستلو خرڅولو څه تصرف اوکړو.نودا جائز دې.

**لِأَنَّهُ إِثْبَاتُ حَقٍّ لَا إِلْزَامُ أَمْرٍ** دلیل دا دې چې دا دیو حق اثبات دې.د کوم امر لازمول نه دی.

**تشریح:-** دليل دا دې چې د وکيل کيدلو خبر يوحق ثابتول دی.کوم امر لازمول نه دی.یعني د مخبر په خبر سره وکيل باندې هيڅ نه لازميږي.بلکه ده ته د تصرف کاوه اجازت وی.او په داسې معامله کې د يوسړي خبر ورکول هم کافي کيږي.نود يو سړي په خبر سره د وکيل تصرف جائز دې.

## د وکالت نه د منع کولو حکم

**قال:** وَلَا يَكُونُ النَّهْيُ عَنِ الْوَكَالَةِ اود وکالت نه منع کول نه صحيح کيږي. حَتَّى يَشْهَدَ عِنْدَهُ شَاهِدَانِ أَوْ رَجُلٌ عَدْلٌ ترديچې ده په وړاندې دوې (دوه) ګواهان يا يو عادل سړې ګواهي ورکړي. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اودا د امام ابوحنيفه ﵀ په نيز دی.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که وکيل معزول کړې شو.نودا به د امام ابوحنيفه ﵀ په نيز معزول نه وی.ترديچې ده په وړاندې دوې (دوه) ګواهان يا يو عادل سړې ګواهي ورکړي.

وَقَالَا: هُوَ وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ(1) او صاحبين ﵄ فرمائي.چه دا(معزول کول) او ړومبې( د وکالت خبر ورکول) برابر دی. لِأَنَّهُ مِنَ الْمُعَامَلَاتِ وَبِالْوَاحِدِ فِيهَا كِفَايَةٌ ځکه چې دا دواړه د معاملاتو څخه دی.او په معاملاتو کې خبر واحد کافي دې.

**تشریح:-** او صاحبين ﵄ فرمائي.چه د وکالت نه معزول کول،او په وکالت باندې مقرر کول دواړه برابر دی.یعني لکه څنګه چې د وکيل کيدلو لپاره د يوفاسق سړي خبر کافي دې.دغه ډول د معزول کيدلو لپاره به هم د يوفاسق سړي خبر کافي وی.

د صاحبينو ﵄ دليل دادې.چه د وکالت نه معزولي د معاملاتو د جنس څخه دې.او جنس معاملات د يو فاسق سړي په خبر سره هم ثابتيږي.لکه مثلاً د غلام ماذون فی التجارة کيدل د يوسړي په خبر سره ثابتيږي.او وکيل کيدل د يوفاسق سړي په خبر سره ثابتيږي.دغه ډول معزول کيدل هم د يو فاسق سړي په خبر سره ثابتيږي.

وَلَهُ أَنَّهُ خَبَرٌ مُلْزِمٌ فَيَكُونُ شَهَادَةً مِنْ وَجْهٍ اود امام ابوحنيفه ﵀ دليل دادې.چه دا خبرملزم دې.نودا من وجه شهادت دې. فَيُشْتَرَطُ أَحَدُ شَطْرَيْهَا وَهُوَ الْعَدَدُ أَوِ الْعَدَالَةُ نود شهادت په دوې (دوه) جزونو کې يو جزء عدد يا جهالت هم شرط دې.

**تشریح:-** د حضرت امام ابوحنيفه ﵀ دليل دادې.چه د معزول کيدلوخبر،خبر ملزم دې.خبر څوځکه دې.چه دا کلام د صدق يا کذب احتمال لري.او په دې سره د خبر ور کاوه علم حاصليږي.او ملزم ځکه دې.چه وکيل لپاره تصرف جائزکيدلو نه روسته معزول کيدل، ده د تصرف د جواز نفي کوي.نودا خبر په يو اعتبار سره د شهادت په معنی کې شو.اوهرکله چې دا خبر د شهادت په معنی کې شو.نود شهادت په اجزاؤ کې يو جزء يعني د عدد يا عدالت کيدل به شرط وی.يعني يا خو مطلقاً دوې (دوه) ګواهان ګواهي ورکړي.چه موکل ته معزول کړې يې.يايو عادل سړې ګواهي ورکړي.

بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول، وَبِخِلَافِ رَسُولِ الْمُوَكِّلِ او په خلاف د موکل دقاصد. لِأَنَّ عِبَارَتَهُ كَعِبَارَةِ الْمُرْسِلِ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْإِرْسَالِ ځکه چې د قاصد عبارت د مرسل (ليږونکی) د عبارت پشان دې.ځکه چې د قاصد ليږلو اړتيا وی.

**تشریح:-** علامه مرغيناني ﵀ فرمائي.چه د امام صاحب او صاحبينو ﵏ په منځ کې په راروانو مسئلو کې هم اختلاف دې. ① ړومبۍ مسئله داده.چه غلام په خطاء سره څوک قتل کړو.یانې دچا مال تلف کړو.نو په مولا واجب شو.چه دا غلام ورکړي.يا ده فديه ورکړي.بيا دوې (دوه) سړو يا يو عادل سړي مولا ته ده د غلام د جرم کاوه خبر ورکړو.بيا ددې نه روسته مولا دا غلام آزاد کړو.یانې خرڅ کړو.نودا به د مولا د اړخه فديه اختيارول وی.ځکه چې مولا فديه ورکول اختيار کړې دی.اوکه يو فاسق سړي خبر ورکړو.او مولا ده د قول تصديق اوکړو.نو بياهم دا

(1) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين ﵄ كذا في فتح القدير (٦\٤٣٩) وردالمحتار(٤\٤٠٨) والكفاية (٦\٤٣٩) نقلاً عن القول الراجح (١٢\٢٦)-



حکم دې.او که تصديق ئې اونکړو.نو اختلاف دې.چه د حضرت امام صاحب ﵀ په نيز د مولا غلام ازادول يا خرڅول به فديه اختيارول نه وی.یعني د يو فاسق په خبر سره د غلام مجرم کيدل به د مولا په نيز نه ثابتيږي.اود صاحبينو ﵄ په نيز په دې صورت کې هم فديه اختيارول دی.ځکه چې د صاحبينو ﵄ په نيز د يو فاسق سړي خبر کافي وی. ② بله مسئله داده.چه يوسړي خپل کور خرڅ کړو.نو دوې (دوه) سړو يا يو عادل سړي شفيع ته ددې بيع خبر ورکړو.شفيع چې داخبر واوريدو.نو خاموش شو.نو ده د شفع ساقط شوه.اوکه يو فاسق خبر ورکړو.او شفيع خاموش شو.نود حضرت امام صاحب ﵀ په نيزچونکه دا خبر ناکافي دې.په دې وجه به د شفيع شفعه نه ساقطيږي.اود صاحبينو ﵄ په نيز چونکه دا خبر کافي دې.په دې وجه د شفيع خاموش پاتې کيدلو سره به ده شفعه ساقط وی.

وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا أَخْبَرَ الْمَوْلَى بِجِنَايَةِ عَبْدِهِ اوهم په دې اختلاف کله چې مولا ته ده د غلام د جرم خبر ورکړې شو.

**تشریح:-** په خلاف د وکالت،چه په دې کې د الزام معنی باطل نه ده.نودا به د شهادت په معنی کې هم نه وی.اوهرکله چې شهادت د وکالت په معنی کې نه دې.نو په دې کې به نه د دوې (دوه) عدد شرط وی.نه به عدالت شرط وی.بلکه د يو فاسق سړي خبر به هم کافي وی.او په خلاف دموکل د قاصد.یعني که موکل د وکيل معزول کاوه لپاره خپل قاصد اوليږلو.نو په دې کې هم عدد يا عدالت شرط نه دې.ځکه چې د قاصد دمعزول کاوه پيغام اداکول داسې دې.ګويا ده پخپله خپله ژبه باندې معزول کړې دې.او پخپله حاضريدل اود معزول کاوه په صورت کې چونکه نه عدد شرط دې.اونه عدالت شرط دې.په دې وجه د قاصد په ذريعه د معزول کيدلو پيغام ليږلو په صورت کې به هم عدد يا عدالت شرط نه وی.او هرسړي ته چونکه هر وخت بالغ عادل سړې نه ملاويږي.په دې وجه وکيل ته د معزول کيدلو پيغام رسولو لپاره د قاصد ليږلو اړتيا هم دې.

وَالشَّفِيعُ وَالْبِكْرُ وَالْمُسْلِمُ الَّذِي لَمْ يُهَاجِرْ إِلَيْنَا يا شفيع يا بکر يا هغه مسلمان ته خبر ورکړې شو.چاچه زموږ اړخ ته هجرت نه دې کړې.

**تشریح:-** بله مسئله داده.که باکرې ته دوې (دوه) سړو يا يو عادل خبر ورکړو.چه ستا سړو ستا نکاح کړې ده.هغه خاموش پاتې شوه.نو بالاتفاق ددې دا سکوت رضامندي ده.اوکه خبر ورکونکې فاسق وی.نود امام صاحب ﵀ په نيز چونکه د يوفاسق سړي خبر غير معتبر دې.په دې وجه به ددې سکوت رضامندي نه وی.اود صاحبينو ﵄ په نيز د يو فاسق خبر چونکه معتبر دې.په دې وجه به د باکره سکوت رضامندي وی ③ دويمه مسئله داده.چه کوم کس په دارالحرب کې مسلمان شو.او دارالاسلام اړخ ته ئې هجرت اونکړو.بيا دوې (دوه) مسلمانانو يا يو عادل مسلمان ده ته د فرائضو خبر ورکړو.نو فرائض به په ده باندې لازم وی.ترديچې د فرض په پريښولو به قضاء لازم وی.اوکه فاسق مسلمان د فرائضو خبر ورکړو.اوده تصديق اوکړو.نو بيا هم دا حکم دې.اوکه تصديق ئې اونکړو.نود امام صاحب ﵀ په نيز به فرائض په ده باندې لازم نه وی.اود صاحبينو ﵄ په نيز به لازم نه وی.صاحب د عنايه ﵀ ليکلي دی.چه شمس الائمه سرخسي ﵀ فرمائيلي دی.چه زما په نيز اصح دادی.چه د يو فاسق مسلمان په خبر سره به دلته کې فرائض لازم وی.او په پريښولو سره به قضاء لازم وی.ځکه چې هريو خبر ورکونکې د رسول الله ﷺ قاصد او ايلچي دې.او په قاصد کې نه عدد شرط دې.اونه عدالت شرط دې.

## د قرضخواهانو لپاره غلام خرڅولو نه روسته مال ضائع کيدل اود غلام مستحق کيدلو مسئله

**قال:** وَإِذَا بَاعَ الْقَاضِي أَوْ أَمِينُهُ عَبْدًا لِلْغُرَمَاءِ فرمائي.اوکه قاضي يا ده امين د قرضخواهانو لپاره د مديون غلام خرڅ کړو. وَأَخَذَ الْمَالَ فَضَاعَ وَاسْتُحِقَّ الْعَبْدُ لَمْ يَضْمَنْ او مال ئې وصول کړو.بيا هغه مال ضائع شو.او هغه غلام مستحق شو.نو هيڅ څوک به ضامن نه وی.

**حل اللغة:** ① الغرماء -قرضخواهان- ② ضاع-ضائع شو- ③ يتقاعد-کيني- ④ تضيع-ضايع به شي

**تشریح:-** مسئله داده.که قاضي يا ده امين د مړي غلام په دې وجه خرڅ کړو.چه د مړي د قرضخواهانو قرضه

اداکړي.نو قاضي يا دده امين په ثمن باندې قبضه اوکړله.خود قاضي يا امين د قبضې نه دا ثمن ضائع شو او ذکرشوي غلام مستحق شو.يعنې يو سړي خپل استحقاق ثابت کړو.او غلام ئې د مشترى نه واخستلو. نو عاقد يعنې قاضي او دده امين به ددې ثمن ضامن نه وي.

لِأَنَّ أَمِينَ الْقَاضِي قَائِمٌ مَقَامَ الْقَاضِي وَالْقَاضِي مَقَامَ الْإِمَامِ دليل دا دې چې د قاضي امين د قاضي قائم مقام دې او قاضي قائم مقام دې د امام المسلمين. وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ لَا يَلْحَقُهُ ضَمَانٌ او په دوى کې هيڅ چاته ضمان نه لاحق کيږي. كَيْ لَا يَتَقَاعَدَ عَنْ قَبُولِ هَذِهِ الْأَمَانَةِ (ددې دپاره) چې خلګ ددې امانت قبلولو نه انکار اونکړي. فَتَضِيعَ الْحُقُوقُ (ګنى) نوحقوق به ضائع شي.

**تشريح:-** دليل دا دې چې د قاضي امين د قاضي قائم مقام وي.او قاضي د امام المسلمين قائم مقام وي.او امام المسلمين،قاضي،او امين په دې درې واړه کې هيڅ څوك ضامن نه وي.ځکه که دا حضرات ضامن جوړ کړې شو.نو څوك به هم دا جليل (او لوى) منصب قبول نکړي.اوکله چې هيڅ څوك دا امانت (منصب قضاء) نه قبلوى.نود خلګو حقونه به ضائع کيږي.حالانکه حقوق ضائع کيدل ممنوع دى.په دې وجه به په دوى کې هيڅ څوك ضامن نه وي.

وَيَرْجِعُ الْمُشْتَرِي عَلَى الْغُرَمَاءِ او مشترى به خپل ثمن د قرضخواهانو نه واپس اخلى. لِأَنَّ الْبَيْعَ وَاقِعٌ لَهُمْ ځکه چې بيع هم ددوى لپاره واقع شوې ده. فَيَرْجِعُ عَلَيْهِمْ عِنْدَ تَعَذُّرِ الرُّجُوعِ عَلَى الْعَاقِدِ نو عاقد (مشترى) ارخ ته رجوع متعذر کيدلو په وخت هم ددوى نه واپس اخلى.

**تشريح:-** اومشترى به خپل ثمن د مړي قرضخواهانو نه واپس اخلى.ځکه چې د مړي غلام هم ددې قرضخواهانو لپاره خرڅ کړې شوې دې.هم دا وجه ده.چه قاضي يا امين به د قرضخواهانو په درخواست باندې د مړي غلام خرڅوى.بهرحال هرکله چې بيع د قرضخواهانو لپاره واقع شوه.او عاقد يعنې قاضي يا امين ارخ ته رجوع متعذر شوه.نو ثمن به هم ددې قرضخواهانو نه واپس اخستې شي.

كَمَا إِذَا كَانَ الْعَاقِدُ مَحْجُورًا عَلَيْهِ لکه کله چې عاقد محجورعليه وى. وَلِهَذَا يُبَاعُ بِطَلَبِهِمْ اوهم په دې وجه د قرضخواهانو په درخواست باندې غلام خرڅولې شي.

**حل اللغة:** ① العاقد-معامله کونکې -② محجور-څوك چې منع شوې وى-③ يباع-خرڅولې شى-④ المشترى-اخستونکې

**تشريح:-** لکه مثلاً که عاقد محجورعليه وى.يعنې نابالغ وى.يا غيرماذون فى التجارة غلام وى.مثلاً يو نابالغ هوښيار، يا غيرماذون فى التجارة چا د خپل غلام خرڅولو لپاره وکيل کړو.اود وکالت په نتيجه کې ئې غلام خرڅ کړو.او ثمن ئې واخستلو.بيا ثمن ضائع شو.او غلام مستحق شو.يعنې چا خپل استحقاق ثابت کړو.او غلام ئې د مشترى نه واخستلو.نو مشترى به خپل ثمن د عاقد (محجورعليه) نه واپس نه اخلى.بلکه دده د مؤکل څخه به ئې واپس اخلى.ځکه چې دا بيع د مؤکل لپاره واقع شوې ده.دغه ډول به دلته کې هم د قرضخواهانو نه واپس اخلى.ځکه چې په دې صورت کې بيع د قرضخواهانو لپاره واقع شوې ده.

### د قاضي په حکم د غلام خرڅولو نه روسته مستحق کيدل يا د ثمن ضائع کيدلو حکم

وَإِنْ أَمَرَ الْقَاضِي الْوَصِيَّ بِبَيْعِهِ لِلْغُرَمَاءِ او که قاضي (د قرضدار مړي) وصي ته حکم اوکړو چه د ميت غلام دده د قرضخواهانو لپاره خرڅ کړي. ثُمَّ اسْتُحِقَّ أَوْ مَاتَ قَبْلَ الْقَبْضِ وَضَاعَ الْمَالُ رَجَعَ الْمُشْتَرِي عَلَى الْوَصِيِّ بيا دا غلام مستحق شو.ياد مشترى د قبضې نه وړاندې مړشو.او ثمن ضائع شو.نو مشترى به خپل ثمن د وصي نه اخلى.

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.که قاضي د مړي قرضدار وصي ته حکم اوکړو.چه د مړي غلام دده د قرضخواهانو لپاره خرڅ کړي.بيا کله چې غلام د مشترى په قبضه کې لاړو.نو مستحق شو.ياد مشترى په قبضه کې راتلو نه وړاندې مړ شو.او ثمن د وصي نه ضائع شو.نو مشترى به د وصي نه خپل ثمن واپس اخلى.ځکه چې وصي خود



مړي د اړخه د نائب په حيثيت سره عقد کونکې دې.که مړي دې وصي مقرر کړې وو.بيا خو دده نائب کيدل ښکاره وو.اوکه قاضي مقرر کړې دې.نوبيا هم دې د مړي نائب دې.

لِأَنَّهُ عَاقِدٌ نِيَابَةً عَنِ الْمَيِّتِ دليل دا دې چې وصي د مړي د اړخه د نائب په حيثيت سره عاقد دې. وَإِنْ كَانَ بِإِقَامَةِ الْقَاضِي عَنْهُ فَصَارَ كَمَا إِذَا بَاعَهُ بِنَفْسِهِ اګرچه د مړي د اړخه قاضي (دا عقد) قائم کړې دې.نو داسې شوه.لکه چې مړي پخپله خرڅ کړې وى.

**تشريح:-** دليل دا دې چې قاضي دې د مړي د اړخه نائب مقرر کړې دې.د خپل اړخه ئې نائب نه دې مقرر کړې.بهرحال وصي د مړي نائب دې.اود نائب عقد داسې دې.لکه څنګه چې د منوب عنه عقد وى.نودا داسې شوه.لکه چې مړي پخپله خپل ژوند کې خرڅ کړې وى.او په دې صورت کې مولى اړخ ته د رجوع اجازت وو.نو دلته کې دهغه قائم مقام يعنې وصي اړخ ته به هم د رجوع اجازت وى.

قَالَ وَرَجَعَ الْوَصِيُّ عَلَى الْغُرَمَاءِ لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُمْ، او وصي به د قرضخواهانو نه واپس اخلى.ځکه چې ده د دغه لپاره عمل کړې دې. وَإِنْ ظَهَرَ لِلْمَيِّتِ مَالٌ يَرْجِعُ الْغَرِيمُ فِيهِ بِدَيْنِهِ اوکه د مړي لپاره څه مال ښکاره شو.نو قرضخواه به د هغې نه خپله برخه وصول کوى. قَالُوا: وَيَجُوزُ أَنْ يُقَالَ يَرْجِعُ بِالْمِائَةِ الَّتِي غَرِمَهَا أَيْضًا مشائخ فرمائى.چه جائز ده.چه دا اووئيلې شى.چه قرضخواه به هغه سل درهم هم واپس اخلى.کوم چې دده وصي يا مشترى ته تاوان ورکړې دې. جَائِزٌ لِأَنَّهُ لَحِقَهُ فِي أَمْرِ الْمَيِّتِ ځکه چې داهم دده ته د مړي په معامله کې لاحق شوى دى.

**تشريح:-** بيا به وصي د مړي قرضخواهانو ته رجوع کوى.ځکه چې وصي هم ددوى لپاره کار کړې دې.اوکه د مړي لپاره څه مال ښکاره شو.نو قرضخواه به د هغې خپله قرضه وصول کوى.

اوس سوال دادې.چه قرضخواه وصي ته کوم تاوان ورکړې دې.مثلاً سل درهمه هغه هم د مړي د مال نه اخستلې شى.او که نشى اخستلې؟ بعض مشائخ فرمائى.چه هغه هم اخستلې شى.ځکه چې دا هم ده ته د مړي په معامله کې ورکول ضرورى شوى دى.نودا تاوان يعنې سل درهمه به هم د مړي د مال نه وصول کوى.او بعض مشائخ فرمائى.چه دده لپاره به د تاوان رقم د مړي د مال نه د اخستلو حق نه وى.ځکه چې قرضخواه ځکه ضامن شوې دې.چه عقد دده لپاره واقع شوې دې.نوهرکله چې عقد د قرضخواه لپاره واقع شو.نوده ته به د ځان علاوه نه د تاوان رقم واپس اخستلو حق نه وى.

وَالْوَارِثُ إِذَا بِيعَ لَهُ بِمَنْزِلَةِ الْغَرِيمِ اوکه د وارث لپاره د ترکه غلام خرڅ کړې شو.نو په مرتبه د قرضخواه دې. لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ كَانَ الْعَاقِدُ عَامِلًا لَهُ ځکه چې کله په ترکه کې پور نه وى.نود عاقد وارث لپاره به کار کول وى.

**تشريح:-** د وراث لپاره که په ترکه کې څه خرڅ کړې شو.نو ددې حکم په منزله د قرضخواه دې.مثلاً که وارث نابالغ وى.او په ترکه کې دڅه شى خرڅولو اړتيا وى.نودا شى وصي خرڅ کړو.او ثمن ئې واخستلو.او بيا دا ثمن ضائع شو.اودا شى مستحق شو.نومشترى به خپل ثمن لپاره وصي اړخ ته رجوع کوى.او وصي به وارث اړخ ته رجوع کوى.ځکه چې کله د مړي په ترکه کې دچا قرضه نه وى.نو عاقد يعنې وصي ددې وارث لپاره کار کونکې شو.او دچا لپاره چې کار اوکړې شى.د نقصان په صورت کې تاوان هم په ده باندې راځى.

### د قاضي د رجم يا لاس کټ کولو يا کوړي لګولوحکم پوره کولومسئله

فَصْلٌ آخَرُ. وَإِذَا قَالَ الْقَاضِي قَدْ قَضَيْتُ عَلَى هَذَا بِالرَّجْمِ فَارْجُمْهُ بل فصل دې.اوکه قاضي اووئيل چه ما په ده باندې د رجم حکم ورکړې دې.نو ته دې رجم کړه. أَوْ بِالْقَطْعِ فَاقْطَعْهُ يا ما دده د لاس کټ کاوه حکم ورکړې دې.نو ته د هغه لاس کټ کړه. أَوْ بِالضَّرْبِ فَاضْرِبْهُ يا ما په ده باندې د کوړو وهلو حکم کړې دې.نو ته دې په کوړو اووهه. وَسِعَكَ أَنْ تَفْعَلَ نو ستا لپاره داسې جائز دى.

**حل اللغة:** ① الرجم -په کاڼړو ويشتل-② القطع-کټ کول-③ الضرب-وهل-④ تعاين-مشاهده اوکړى

**تشریح:-** په دې فصل کې ددې اصل بیان کوي.چه صرف د قاضی قول د معزول کیدلو نه وړاندې یاد معزول کیدلو نه روسته قبول دې.اوکه قبول نه دې.مسئله داده.که قاضی یو کس ته اووئیل.چه ما په فلانی سړی باندې د رجم حکم کړې دې.نو ته هغه رجم کړه.یامې د هغه د لاس کټ کولوحکم ورکړې دې.نوته د هغه لاس کټ کړه.یا مې دهغه د کوړو وهلو حکم کړې دې.نوته هغه په کوړو اووهه.نو کوم قاضی چې داسې حکم ورکړې دې.هغه له داسې کول جائز دی.هم دا ظاهرالروایة دې.

| وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ رَجَعَ عَنْ هٰذَا اود امام محمد ؒ نه روایت دې.چه دوی ددې قول نه رجوع کړې ده. وَقَالَ: لَا تَأْخُذْ بِقَوْلِهِ حَتّٰى تُعَايِنَ الْحُجَّةَ (١) او وئیلی ئې دی.چه ته دده قول مه قبلوه.تردې چې د حجت مشاهده اوکړې. |
|---|

**تشریح:-** اود امام محمد ؒ نه په نوادرکې یو روایت دې.چه دوی ددې قول نه رجوع کړې ده.اودا ئې فرمائیلی دی.چه څوک ئې په سزا ور کاوه باندې مقرر کړې دې.هغه د قاضی حکم قبول نکړي.تردې چې دده موجودګۍ کې شهادت ورنکړې شی.یعنی که ګواهانو په دې جرم باندې دده په موجودګۍ کې ګواهی ورکړله.نودده لپاره د قاضی دحکم مطابق سزا نافذ کول جائز دی.ګنی د قضاء حکم دې نه قبلوی.

| لِأَنَّ قَوْلَهُ يَحْتَمِلُ الْغَلَطَ وَالْخَطَأَ وَالتَّدَارُكُ غَيْرُ مُمْكِنٍ دلیل دا دې چې د قاضی قول د غلطۍ او خطاء احتمال لری.او تدراك (راګرځول) ممکن نه دی. |
|---|

**حل اللغة:** ① يحتمل-احتمال لری-② التدارك-تلافی کول-③ استحسن-ښه ګڼرلې ده-④ انشاء-پیدا کول

**تشریح:-** دلیل دادې.چه د قاضی په حکم کې د خطاء او غلطۍ احتمال دې.اود سزا ور کاوه نه روسته تدارك هم ممکن نه دې.په دې وجه د سزا ور کاوه نه وړاندې به دې پخپله هم اطمینان کوی.او ددې صورت هم دادې.چه د جرم ګواهان دده په موجودګۍ کې ګواهی ورکړې.

| وَعَلٰى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ لَا يُقْبَلُ كِتَابُهُ. او ددې روایت په بناء باندې د قاضی قول قبلول پکار نه دی. وَاسْتَحْسَنَ الْمَشَايِخُ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ او مشائخو ؒ دا روایت مستحسن ګرځولې دې. لِفَسَادِ حَالِ أَكْثَرِ الْقُضَاةِ فِي زَمَانِنَا څکه چې زموږ په زمانه کې د اکثرو قاضیانو حالت خراب شوې دې. إِلَّا فِي كِتَابِ الْقَاضِي لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ بغیر د قاضی د خط نه.څکه چې ددې اړتیا دې. |
|---|

**تشریح:-** علامه مرغینانی ؒ فرمائی.چه د امام محمد ؒ ددې روایت تقاضا داده.چه د قاضی خط هم قبول نکړې شی.څکه چې په دې کې هم د غلطۍ احتمال دې.خو احنافو مشائخو ؒ په دې کې دا روایت د اړتیا په لحاظ سره پرېښودې دې.البته د،،کتاب القاضی الی القاضی،،نه په علاوه کې د امام محمد ؒ دا روایت احنافو مشائخو ؒ مستحسن او خوښ ګرځولې دې.څکه چې زموږ په زمانه کې د اکثرو قاضیانو حالت خراب شوې دې.

| وَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ أَنَّهُ أَخْبَرَ عَنْ أَمْرٍ يَمْلِكُ إِنْشَاءَهُ اود ظاهرالروایة وجه داده.چه ده ددا‌سې امر خبر ورکړې دې.د کوم د ایجاد چې دې مالك دې. فَيُقْبَلُ لِخُلُوِّهِ عَنِ التُّهْمَةِ، نود تهمت نه د خالی کیدلو په وجه به د قاضی حکم قبول وی. وَلِأَنَّ طَاعَةَ أُولِي الْأَمْرِ وَاجِبَةٌ، اوځکه چې د حُکامو(اولوالامر) فرمانبرداری کول واجب دی. وَفِي تَصْدِيقِهِ طَاعَةٌ او دده په تصدیق کولوکې فرمانبرداری ده. |
|---|

**تشریح:-** د ظاهرالروایة وجه داده.چه قاضی ددا‌سې شئ خبر ورکړې دې.د کوم د ایجاد چې دې مالك او مختار دې.څکه چې قاضی متولی دې.او متولی د قضاء په ایجاد باندې قادر وی.اوکوم کس چې دهغه شئ په ایجاد باندې قادر وی.د کوم چې دې خبر ورکوی.نودې په خبر کې نه متهم کیږي.نو هر کله چې د قاضی حکم او فیصله د

(١) القول الراجح هو هذا قول محمد ؒ من عدم الاخذ بقوله حتى تعاين الحجة كذا فى الدرالمختار(٤٠٩\٤) ومجمع الأنهر(٢٠٤\٣) نقلاً عن القول الراجح (١٢٧\٢)-



تهمت نه خالی ده.نو دده حکم به قبلولې شی. دوهم دلیل دادې.چه قاضی د اولوالامر څخې دې.اود اولوالامر اطاعت واجب دې.اود قاضی د حکم په تصدیق کولوکې چونکه اطاعت دې.په دې وجه به ددې تدیق کولې شی.

| وَقَالَ الْإِمَامُ أَبُو مَنْصُورٍ رَحِمَهُ اللهُ: إِنْ كَانَ عَدْلًا عَالِمًا يُقْبَلُ قَوْلُهُ لِانْعِدَامِ تُهْمَةِ الْخَطَإِ وَالْخِيَانَةِ، او امام ابومنصور ؒ فرمائی.که قاضی عالم او عادل وی.نو دده قول به قبلولې شی.څکه چې د خطاء او خیانت تهمت موجود نه دې. وَإِنْ كَانَ عَدْلًا جَاهِلًا يُسْتَفْسَرُ، اوکه قاضی عادل جاهل وی.نو دده څخه به استفسار (معلومات) کولې شی. فَإِنْ أَحْسَنَ التَّفْسِيرَ وَجَبَ تَصْدِيقُهُ وَإِلَّا فَلَا نوکه ده ښه تفسیر بیان کړو.نو دده تصدیق کول واجب دی.ګنی (واجب) نه دی. |
|---|

**حل اللغة:** ① انعدام-نشتوالې-② يستفسر-معلومات به کولې شی-③ الف-زر روپۍ مثلا-④ احسن-زیات ښه

**تشریح:-** علامه مرغینانی ؒ فرمائی.چه شیخ ابومنصور ماتوریدی ؒ فرمائیلی دی.که قاضی عالم (مجتهد) او عادل وی.نو دده قول به قبلولې شی.څکه چې دعالم کیدلو په وجه په فیصله کې د غلطۍ د تهمت نه محفوظ شو.اود عادل کیدلو په وجه د خیانت د تهمت نه بچ شو.په دې صورت کې بالاتفاق قاضی نه د استفسار (د تپوس) اړتیا نشته.اوکه قاضی عادل اوجاهل وی.نو دده د فیصلې په اړه کې به استفسار کولې شی.څکه چې د جاهل کیدلو په وجه د غلطۍ تهمت موجود دې.نوکه قاضی د خپلې فیصلې د شریعت مطابق تفسیر اوکړو.او په وضاحت سره ئې بیان کړل.نو دده تصدیق کول واجب دی.اوکه قاضی د شریعت مطابق تفسیر بیان نکړو.نو دده تصدیق کول به واجب نه وی.او دده قول به نشی قبلولې.

| وَإِنْ كَانَ جَاهِلًا فَاسِقًا أَوْ عَالِمًا فَاسِقًا لَا يُقْبَلُ اوکه قاضی جاهل فاسق یا عالم فاسق وی.نو دده قول به نه قبلیږي. إِلَّا أَنْ يُعَايِنَ سَبَبَ الْحُكْمِ لِتُهْمَةِ الْخَطَإِ وَالْخِيَانَةِ مګر داچه د حکم د سبب مشاهده اوکړې.څکه چې په دې صورت کې د خطاء او خیانت تهمت دې. |
|---|

**تشریح:-** اوکه قاضی جاهل فاسق وی.یا عالم فاسق وی.نو دده قول به نه قبلیږي.مګر داچه هغه سړې کوم چې سزا ور کاوه باندې مامور کړې شوې دې.د حکم د سبب پخپله مشاهده اوکړې.څکه چې د جاهل او فاسق کیدلو په صورت کې د خطاء او خیانت دواړه تهمتونه موجود دی.اود عالم فاسق کیدلو په صورت کې د خیانت تهمت موجود دې.

## د قاضی د معزول کیدلو نه روسته په قاضی باندې د ظلم دعوه کولو حکم

| قَالَ وَإِذَا عُزِلَ الْقَاضِي فرمائی.اوکله چې قاضی معزول شو. فَقَالَ لِرَجُلٍ أَخَذْتُ مِنْكَ أَلْفًا وَدَفَعْتُهَا إِلٰى فُلَانٍ قَضَيْتُ بِهَا عَلَيْكَ نوده یو کس ته اووئیل.چه ما ستا نه یو زر درهم اخستی وو.او فلانی ته مې ورکړې وې.په داسې حال کې چې ما دهغه لپاره په تا باندې د یو زر درهمو فیصله کړې وه. فَقَالَ الرَّجُلُ أَخَذْتَهَا ظُلْمًا فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْقَاضِي نو دغه سړي اووئیل.چه تا هغه درهم په ناحق طور باندې اخستی وو.نود قاضی قول به قبول وی. |
|---|

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه کله قاضی معزول شو.نوده یوسړي مثلاً خالد ته اووئیل.چه ما دخپلې د قضاء د عهدې په زمانه کې په تا باندې دحامد لپاره د یو زر درهمو حکم کړې وو.او هغه یو زر درهم مې ستا نه اخستي وې.او حامد ته مې ورکړې وې.نو خالد اووئیل.چه تا هغه یوزر درهم زما نه ظلماً په ناحقه اخستي وې.نود هغې واپس کول واجب دی.نو په دې صورت کې که دا سړې یعنی خالد د خپل ظلم دعوه بینه سره ثابت نکړله.نود قاضی قول به معتبر وی.

| وَكَذَا لَوْ قَالَ قَضَيْتُ بِقَطْعِ يَدِكَ فِي حَقٍّ، هٰذَا اوهم دغه ډول که ئې اووئیل.چه ما په امرحق کې ستا د لاس کټ کاوه حکم کړې وو. إِذَا كَانَ الَّذِي قُطِعَتْ يَدُهُ دا واړه هغه وخت دی.چه دچا لاس کټ کړې شوې دې. وَالَّذِي أُخِذَ مِنْهُ الْمَالُ اود چا نه چې مال اخستلې شوې دې. مُقِرَّيْنِ أَنَّهُ فَعَلَ ذٰلِكَ وَهُوَ قَاضٍ هغوی ددې امر مقر وی.چه قاضی دا فعل په داسې حالت کې کړې دې.کله چې دې قاضی وو. |
|---|

**تشریح:-** دغه ډول که قاضي يوکس ته اووئيل.چه ما ستا د لاس کټ کاوه په تا باندې په يو حق امرکي حکم ورکړې وو.او دغه سړي اووئيل.چه تا زما لاس په ناحقه کټ کړې دې.نو ماله تاوان راکړه.نو مقطوع اليد که په بينه سره د خپل ظلم دعوه ثابته نکړله.نود قاضي قول به معتبر وي.او په ذکرشوي دواړه صورتونوکي به د قاضي قول هغه وخت معتبر وي.چه کله مقطوع اليد او ماخوذ منه المال دواړه ددې خبرې اقرار کوي.چه قاضي د مال اخستلو.اود لاس کټ کاوه فيصله او عمل د خپلې قضاء عهدې په زمانه کي کړې دې.

وَوَجْهُهُ أَنَّهُمَا لَمَّا تَوَافَقَا أَنَّهُ فَعَلَ ذٰلِكَ فِي قَضَائِهِ كَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لَهُ. او ددې وجه داده.چه کله دې دواړو اتفاق اوکړو.چه قاضي دا فعل د خپلې قضاء په زمانه کي کړې دې.نو ښکاره حال د قاضي لپاره شاهد دې. إِذِ الْقَاضِي لَا يَقْضِي بِالْجَوْرِ ظَاهِرًا خکه چې په ښکاره قاضي په ظلم سره حکم نه کوي.

**حل اللغة:** ① **توافقا** -يوبل سره موافق شول- ② **الجور** -ظلم- ③ **قوت** -خرچه- ④ **التصادق** - د يو بل تصديق کول

**تشریح:-** او ددې وجه داده.چه ماخوذ منه المال او قاضي،يا مقطوع اليد او قاضي په دې خبره باندې اتفاق اوکړو.چه قاضي دا فعل د خپلې قضاء په زمانه کي کړې دې.او ښکاره چونکه هم داده.چه قاضي په ظلم سره حکم نه کوي.نو ښکاره حال د قاضي لپاره شاهد شو.او ښکاره حال چې دچا لپاره شاهد وي.قول هم د هغه معتبر وي.خکه به د قاضي قول معتبر وي.او په قاضي به قسم هم عايد وي.خکه چې د قاضي فعل دده د قضاء په زمانه کي د قاضي او مقضي عليه دواړو په اتفاق سره ثابت شوې دې.يعني د دواړو په اتفاق سره دا خبره ثابت شوې ده.چه د قاضي دا فعل په داسې حالت کي موجود شوې وو.کله چې دې قاضي وو.او په قاضي باندې قسم نه وي.نو په دې صورت کي به هم په قاضي باندې قسم نه وي.

وَلَا يَمِينَ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ ثَبَتَ فِعْلُهُ فِي قَضَائِهِ بِالتَّصَادُقِ او په قاضي باندې قسم هم نشته.خکه چې د قاضي فعل دده د قضاء په زمانه کي پخپل منځ کي تصديق سره ثابت شوې دې. وَلَا يَمِينَ عَلَى الْقَاضِي او په قاضي باندې قسم نه عائد کيږي.

**تشریح:-** او په قاضي به قسم خکه نه وي.① که په قاضي باندې قسم واجب کړې شي.نو خلک به د قضاء عهده قبلولو ته خان ساتي.او کله چې خلګ د قضاء عهده قبلولونه خان ساتي.نود خلګو حقونه به ضائع کيږي.② دوهم دليل دادې.چه قاضي امين وي.خصيم نه وي.او يمين په خصم باندې واجب وي.په امين باندې واجب نه وي.په دې وجه به هم په قاضي باندې يمين واجب نه وي.

### د لاس کټ کونکي اومال اخستونکي به ضامن نه وي

وَلَوْ أَقَرَّ الْقَاطِعُ وَالْآخِذُ بِمَا أَقَرَّ بِهِ الْقَاضِي لَا يَضْمَنُ أَيْضًا اوکه لاس کټ کونکي او مال اخستونکي د هغه شي اقرار اوکړو.د کوم چې قاضي اقرار کړې دې.نو هغه به هم ضامن نه وي.

**حل اللغة:** ① **القاطع** -لاس کټ کونکي- ② **اخذ** -اخستونکي- ③ **العزل** -معزوله کول- ④ **مدة** -موده

**تشریح:-** مسئله داده.که د قاضي په حکم سره لاس کټ کونکي ياد قاضي په حکم سره مال اخستونکي د هغه شي اقرار اوکړو.دکوم شي چې قاضي اقرار کړې دې.يعني د قاضي په قضاء سره د لاس کټ کاوه اود مال اخستلو اقرار ئې اوکړو.نو لاس کټ کونکي اومال اخستونکي به هم ضامن نه وي.لکه څنګه چې قاضي نه ضامن کيږي.

لِأَنَّهُ فَعَلَهُ فِي حَالِ الْقَضَاءِ وَدَفْعُ الْقَاضِي صَحِيحٌ دليل دا دې چې ده د قضاء په حالت کي داسې کړې دی.اود قاضي ورکول صحيح دی. كَمَا إِذَا كَانَ مُعَايَنًا لکه کله چې مشاهد وي.(نو صحيح کيږي)

**تشریح:-** دليل دا دې چې قاضي په حالت د قضاء کي داسې کړې دی.اود قاضي ورکول صحيح دی.يعني که قاضي د مديون نه،يا په کوم کس نې چې د قضاء حکم ورکړې دې.د هغه نه مال واخستلو.او مدعي ته نې ورکړو.نو صحيح دې.لکه څنګه چې په دې صورت کي صحيح دی.کله چې د قاضي فعل د ماخوذ منه المال په وړاندې دی.يعني په ځاې چې حکم ورکړو.که دهغه نه نې واخلي.اود هغه په وړاندې نې مدعي ته ورکړي.نو صحيح ده.او



اخستونکي به ضامن نه وي.دغه ډول که د ماخوذ منه المال په غير موجودګۍ کي نې ورکړې وي.نو بيا به هم اخستونکي ضامن نه وي.

### د مقطوع اليد يا مدعي عليه دعوه کولو کښي به د معزول قاضي د قول حکم

وَلَوْ زَعَمَ الْمَقْطُوعُ يَدُهُ أَوِ الْمَأْخُوذُ مَالُهُ أَنَّهُ فَعَلَ قَبْلَ التَّقْلِيدِ أَوْ بَعْدَ الْعَزْلِ اوکه هغه کس دچا چې لاس کټ شوې دې.يا هغه سړي دچا نه چې مال اخستې شوې دې.داسې اووئيل.چه ده د قاضي مقرر کيدلو نه وړاندې يا د معزول کيدلو نه روسته داسې کړې دی. فَالْقَوْلُ لِلْقَاضِي أَيْضًا هُوَ الصَّحِيحُ نوبيا به هم د قاضي قول قبول وي.اوهم دا صحيح ده.

**تشریح:-** مسئله داده.که قاضي خالد ته اووئيل.چه ما په تا باندې د يو زر درهمو فيصله د خپلې قضاء په زمانه کي کړې وه.او ستانه مې اخستې وې.او حامد ته مې ورکړې وې.يا قاضي يوکس ته اووئيل.چه ما د خپلې قضاء په زمانه کي ستا لاس کټ کړې وو.خو ماخوذ منه المال او مقطوع اليد اووئيل.چه تا د قاضي مقرر کيدلو نه وړاندې ياد معزول کيدلو نه روسته داسې کړې دی.نو بياهم د صحيح قول مطابق د قاضي قول قبول وي.

لِأَنَّهُ أَسْنَدَ فِعْلَهُ إِلَى حَالَةٍ مَعْهُودَةٍ مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ دليل دا دې چې قاضي خپل فعل داسې مشهور حالت اړخ ته منسوب کړې دې.کوم چې د ضمان منافي دې. فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ طَلَّقْتُ أَوْ أَعْتَقْتُ وَأَنَا مَجْنُونٌ نو داسې شوه.لکه کله چې سړي اووائي.ما طلاق ورکړو.يا ما آزاد کړو.حالانکه زه مجنون (ليونې) ووم. وَالْجُنُونُ مِنْهُ كَانَ مَعْهُودًا او ددې سړي ليونتوب خلګو ته معلوم وو.

**حل اللغة:** ① **اسند** -نسبت نې اوکړو- ② **مجنون** -ليوني- ③ **معهودا** -د دې معاهده شوې- ④ **مدة** -موده

**تشریح:-** دليل دا دې چې قاضي خپل فعل داسې حالت اړخ ته منسوب کړې دې.کوم چې د ضمان منافي دې.يعني قاضي خپل فعل د قضاء زمانې اړخ ته منسوب کړې دی.اود قضاء حالت د ضمان منافي دې.نو قاضي ددې اسناد په وجه د ضمان منکرشو.او مدعي سره د بينه نه کيدلو په صورت کي د منکر قول معتبر وي.نو دلته کي به هم د قاضي قول معتبر وي.لکه مثلاً يوکس اووئيل.چه ما خپلې ښځې ته د جنون په حالت کي طلاق ورکړې وو.يا ما خپل غلام د جنون په حالت کي آزاد کړې وو.او دده مجنون کيدل خلګو ته معلوم هم دی.نوهم دده قول به معتبر وي.چه نه به په ښځه باندې طلاق واقع وي.اونه به غلام آزاد وي.خکه چې ده عتاق او طلاق داسې حالت اړخ ته منسوب کړې دی.کوم حالت چې د ايقاع طلاق اود ايقاع عتق منافي دې.

### د لاس کټ کونکي او مال اخستونکي د ضامن کيدلو صورت

وَلَوْ أَقَرَّ الْقَاطِعُ أَوِ الْآخِذُ فِي هٰذَا الْفَصْلِ بِمَا أَقَرَّ بِهِ الْقَاضِي يَضْمَنَانِ اوکه لاس کټ کونکي يا مال اخستونکي په دې صورت کي د هغه شي اقرار اوکړو.دکوم چې قاضي اقرار کړې دې.نو دواړه به ضامن وي.

**تشریح:-** مسئله داده.که لاس کټ کونکي جلاد يا مال اخستونکي د هغې اقرار اوکړو.د کوم چې قاضي اقرار کړې دې.يعني قاطع او آخذ مال ددې خبرې اقرار اوکړو.چه ما دا کار د قاضي په حکم هغه وخت کړې دې.کله چې دې په منصب د قضاء باندې وو.او ماخوذمنه المال او مقطوع اليد اووئيل.چه د قاضي مقرر کيدلو نه وړاندې يا د معزول کيدلو نه روسته دا کارکړې دې.نو په دې صورت کي قاطع او آخذمال ضامن وي.او قاضي به ضامن نه وي.

لِأَنَّهُمَا أَقَرَّا بِسَبَبِ الضَّمَانِ، وَقَوْلُ الْقَاضِي مَقْبُولٌ فِي دَفْعِ الضَّمَانِ عَنْ نَفْسِهِ لَا فِي إِبْطَالِ سَبَبِ الضَّمَانِ عَلَى غَيْرِهِ دليل دا دې چې دوی دواړو د ضمان دسبب اقرار کړې دې.اود قاضي قول د خپل ذات نه په ضمان لرې کاوه کي قبول دې.اود بل نه د ضمان سبب باطلولوکي مقبول نه دې.

**حل اللغة:** ① **الضمان** -تاوان- ② **الدفع** -لرې کول- ③ **ابطال** -باطلول- ④ **مقبول** -قبول شوې

**تشریح:-** دلیل دا دې چې دوی دواړو سبب د ضمان یعنې د لاس کټ کاوه او مال اخستلو اقرار کړې دې. او د قاضي قول خپل خان نه په ضمان لرې کولوکې معتبر دې. خود بل نه د ضمان سبب باطلولوکې معتبر نه دې. نوهرکله چې مقطوع الید او ماخوذ منه المال د حالت قضاء اقرار نه کوي. نو په قاطع او آخذ مال به ضمان واجب وي.

**بِخِلَافِ الْأَوَّلِ** په خلاف د اولنی صورت، **لِأَنَّهُ ثَبَتَ فِعْلُهُ فِي قَضَائِهِ بِالتَّصَادُقِ** ځکه چې هلته کې د قاضي فعل د قضاء په حالت کې کېدل ددوی ټولو پخپل منځ کې تصدیق سره ثابت شوې دې.

**تشریح:-** په خلاف د ړومبی صورت، ځکه چې هلته کې د قاضي فعل په حالت قضاء کې ددوی ټولو په مشترکه تصدیق سره ثابت شوې دې.

**وَلَوْ كَانَ الْمَالُ فِي يَدِ الْآخِذِ قَائِمًا** او که مال د اخستونکی په قبضه کې بعینه موجود وي. **وَقَدْ أَقَرَّ بِمَا أَقَرَّ بِهِ الْقَاضِي** او ده هم دهغه اقرار کړې وو. د کوم چې قاضي اقرار کړې دې. **وَالْمَأْخُوذُ مِنْهُ الْمَالُ صَدَّقَ الْقَاضِيَ فِي أَنَّهُ فَعَلَهُ فِي قَضَائِهِ** او ماخوذ منه المال د قاضي په دې اړه کې تصدیق او کړو چه قاضي دا فعل دخپل قضاء په زمانه کې کړې دې. **أَوْ ادَّعَى أَنَّهُ فَعَلَهُ فِي غَيْرِ قَضَائِهِ** یائې دعوه او کړله چه ده د قضاء د زمانې نه په علاوه کې کړې دې **يُؤْخَذُ مِنْهُ**. نو دده نه به مال اخستې شي.

**تشریح:-** مسئله دا ده. که مال آخذ مال سره بعینه موجود وي. او د هغې اقرار نې او کړو. د کوم چې قاضي اقرار کړې دې یعنې قاضي اووئیل چه ما د فیصلې حکم ورکړې دې. مال مې اخستې دې. او دې سړی ته مې ورکړې دې. او هغه اووئیل چه آو، قاضي زما لپاره د مال اخستلو حکم ورکړې وو. د هغه نه ئې مال اخستې دې. او ماته ئې راکړې دې. او س ماخوذ منه المال په دې اړه کې د قاضي تصدیق او کړی. چه ده داکار د قضاء په حالت کې کړې دې. نو په دواړه صورتونوکې به د آخذ نه مال اخستې شي.

**لِأَنَّهُ أَقَرَّ** دلیل دا دې آخذ (اخستونکی) ددې خبرې اقرار کړې دې. **أَنَّ الْيَدَ كَانَتْ لَهُ** چې قبضه د ماخوذ منه المال وه. **فَلَا يُصَدَّقُ فِي دَعْوَى تَمَلُّكِهِ** نو پخپل مالك کېدلو دعوه کې به دده تصدیق نشي کولې. **إِلَّا بِحُجَّةٍ** مگر په حجت سره، **وَقَوْلُ الْمَعْزُولِ فِيهِ لَيْسَ بِحُجَّةٍ** او د معزول (قاضي) قول په دې اړه کې حجت نه دې

**تشریح:-** دلیل دا دې چې آخذ ددې خبرې اقرار کړې دې. چه قبضه د ماخوذ منه المال وه. خو سره سره دخپل مالك کېدلو دعوه هم کوي. نو دده دا دعوه به دحجت شرعیه نه بغیر معتبر نه وي. او معزول قاضي چونکه یو گواه دې. په دې وجه به دده قول هم حجت نه وي. او د آخذ نه دمال تلف کېدلو په صورت کې د معزول قاضي قول ځکه حجت وو. چه قاضي ددې د تاوان واجبېدلو نه منکر دې. او د منکر قول معتبر وي.

## كتاب الشهادة

(دا) کتاب د شهادت (په بیان کې) دې.

**تشریح:-** دکتاب ادب القاضي او د، ، کتاب الشهادات، ، په منځ کې مناسبت دا دې. چه قاضي چونکه پخپله قضاء کې د شاهدانو د شهادت محتاج وي. په دې وجه ئې د ادب القاضي نه پس، ، کتاب الشهادات، ، ذکر کړو. علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائي. چه ثبوت حق چونکه په شهادت سره کېږي. په دې وجه قضاء په شهادت باندې موقوف ده. او شهادت ددې موقوف علیه ده. او مقوف علیه چونکه د موقوف نه وړاندې وي. په دې وجه کتاب الشهادات وړاندې او کتاب ادب القاضي روسته کېدل پکار وو. خو ددې ځواب دا دې. چه په شهادت سره مقصود قضاء ده. او شهادت ددې وسیله ده. او مقصود د اهم کېدلو په وجه د تقدیم زیات مستحق وي. په دې وجه کتاب ادب القاضي وړاندې او، ، کتاب الشهادات، ، روسته ذکر کړې شو.

**معنی الشهادة لغوة وشرعاً** ۞ د شهادت لغوي معنی ده. د مشاهدې نه روسته د څه شي خبر ورکول. او د فقهاؤ په اصطلاح کې د چا حق ثابتولو لپاره د قاضي په مجلس کې په لفظ د شهادت سره د رښتیا خبرې د خبر ور کاوه



ده.

**سبب تحملها** ۞ او د شهادت د تحمل سبب د دغه شي مشاهده کول دي. د کوم شي په اړه کې چې گواهي ورکولې شي. یعنې کوم شیان چې په سترگو سره کتلې کېږي. په هغې کې کتل ضروري دي. او کوم شیان چې په غوږونو سره اورېدلې شي. په هغې کې اورېدل ضروري دي.

**سبب اداءها** ۞ او د شهادت ادا کاوه سبب دا دې. چه یا خو دده مدعي گواهي طلب کړي. او یا د مدعي د حق فوت کېدلو یره وي. خودا به هغه وخت وي. کله چې مدعي ته دده شاهد کېدل معلوم نه وي. او د شهادت شرط دا دې. چه شاهد کامل العقل وي. د شهادت یاد ساتلو صلاحیت وي. ولایت حاصل وي. او د مدعي او مدعي علیه په منځ کې توپیر کاوه باندې قدرت حاصل وي. او که مدعي علیه مسلمان وي. نو د شاهد مسلمان کېدل هم شرط دي.

**رکنها** ۞ د شهادت رکن لفظ، ، اشهد، ، دې. او ددې حکم د شاهدینو په نیز د تزکیه نه روسته قاضي باندې د شهادت د مقتضی مطابق فیصله و اجبېدل دي.

**قَالَ: الشَّهَادَةُ فَرْضٌ تَلْزَمُ الشُّهُودَ** گواهي داسې فرض دې چه په گواهانو باندې لازم ده. **وَلَا يَسَعُهُمْ كِتْمَانُهَا إِذَا طَالَبَهُمُ الْمُدَّعِي** او کله چې مدعي ددوی نه مطالبه او کړي. نود گواهانو لپاره ددې د پټولو گنجائش نشته.

**حل اللغة:** ① **تلزم** - لازمېږي - ② **یسع** - اجازت - ③ **کتمان** - پټول - ④ **طالب** - چه طلب او کړي

**تشریح:-** دشهادت ادا کاوه دوې (دوه) صورتونه دي په صورت کې فرض عین او په بل صورت کې فرض کفایه دې. که گواهي ورکونکی که یو، دوې (دوه) متعین سړي وي. نو گواهي ورکول به فرض عین وي. او که ډېر خلگ وي. نو فرض کفایه به وي.

**لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا}** دلیل دا دې الله تعالی فرمائيلي دي. چه کله گواهان راوغوښتلې شي. نو انکار دې نه کوي. **وَقَوْلُهُ تَعَالَى {وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ}** او تاسو گواهي مه پټوئ. او څوك چې گواهي پټوي. د هغه زړه گناهگار دې.

**حل اللغة:** ① - **یاب** - انکار کوي - ② **الشهداء** - جمع د شاهد، گواه - ③ **اثم** - گناهگار - ④ **قلب** - زړه

**تشریح:-** د شهادت په فرضیت باندې دا آیاتونه دلیل دي. ① ﴿وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا﴾ بقره) یعنې کله چې گواهان راوغوښتلې شي. نو دوی دې انکار نه کوي. په آیت کې چونکه د مطالبې په وخت د انکار کاوه نه منع فرمائیلې شوې ده. ځکه به د مطالبې په وخت د حاضرېدلو امر وي. او امر په وجوب باندې دلالت کوي. نو شهادت ورکول به واجب او لازم وي. ② ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ﴾ یعنې تاسو گواهي مه پټوئ. په دې آیت کې د کتمان شهادت نه منع فرمائیلې شوې ده. او د کتمان شهادت نه منع کول مستلزم دي. د شهادت اظهار ته. او د شهادت اظهار نوم دې د شهادت اداکولو. نو هرکله چې کتمان شهادت ممنوع دې. نو اظهار شهادت یعنې شهادت اداکول به واجب وي. ③ ؟﴿وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ﴾ یعنې کوم کس چې گواهي پټوي. د هغه زړه گناهگار دې. په دې آیت کې په کتمان شهادت باندې وعید دې. او د وعید استحقاق چونکه د واجب په پرېښودلو سره کېږي. ځکه به شهادت ادا کاوه واجب وي. پاتې شوه دا خبره چې په آیت کې خاص طور باندې قلب (زړه) ته گناهگار ولې وئیلی شوی دی؟ نو ددې ځواب دا دې. چه قلب رئیس الاعضاء دې. نو کله چې رئیس الاعضاء گناهگار وي. نو نور اندامونه به په درجه اولی گناهگار وي.

**وَإِنَّمَا يُشْتَرَطُ طَلَبُ الْمُدَّعِي لِأَنَّهَا حَقُّهُ** او د مدعي طلب کول ځکه شرط دي. چه شهادت دده حق دې. **فَيَتَوَقَّفُ عَلَى طَلَبِهِ كَسَائِرِ الْحُقُوقِ** نو د نورو حقونو پشان شهادت به هم دده په طلب کاوه باندې موقوف وي.

**حل اللغة:** ① **یشترط** - شرط کولې شي - ② **یتوقف** - موقوف به وي - ③ **سائر** - ټول - ④ **الحقوق** - جمع د حق،

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه د مدعي طلب کول ځکه شرط دي. چه شهادت د مدعي حق دې. نو د نورو حقونو پشان شهادت هم دده په طلب کاوه باندې موقوف دي. یعنې لکه څنگه چې نور حقوق د مدعي په طلب کاوه

باندې موقوف دی. دغه ډول شهادت هم دده په طلب کاوه باندې موقوف دی.

اعتراض: دلته يو اعتراض دا دې چه د ،، کتاب الشهادات ،، د تشريح لاندې وئيلی شوی دی. چه د شهادت ادا کاوه سبب د مدعی طلب کول دی. او علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. چه د مدعی طلب کول شرط دی. اود شرط او سبب په منځ کې چونکه تغاير دې. نو طلب د مدعی شرط او سبب دواړه څنګه کيدای شی.

خواب: ددې خواب دادې چه سبب د مدعی طلب دې او سبب يعنی د طلب موجود کيدل شرط دی. حاصل دا چې سبب خو طلب دې اود طلب موجود کيدل شرط دی. نو په دې صورت کې هم د يوڅيز سبب او شرط دواړه کيدل نه لازميږی. اود هداية تقديری عبارت به داسې وی. ﴿وانما يشترط وجود طلب المدعی﴾ يعنی د مدعی طلب موجود کيدل شرط دی.

اعتراض: دلته يو اعتراض هم دې هغه دا که مدعی ته د شاهد علم نه وی. او شاهد ته دا خبره معلومه وی. که ما شهادت ورنکړو. نود مدعی حق به باطل شی. نو په دې صورت کې شاهد باندې شهادت ورکول واجب دی. حالانکه دلته د مدعی طلب کول اونه موندې شو.

خواب: ددې خواب دادې چه په دې صورت کې صراحةً طلب کول اګرچه اونه موندې شو. خو دلالةً اوموندې شو. ځکه چې د مدعی په طلب باندې شهادت اداکول واجبونکې د مدعی حق ژوندی کول دی. اود مدعی حق ژوندی کول په ذکر شوی سوال کې هم اوموندې شو. نودا به هم د مدعی د طلب کاوه په معنی کې وی. اوهر کله چې دا صورت د مدعی د طلب کاوه په معنی کې دې. نودا به هم د هغې سره لاحق کولې شی.

## د ګواهئ شرعی حيثيت

> وَالشَّهَادَةُ فِي الْحُدُودِ يُخَيَّرُ فِيهَا الشَّاهِدُ بَيْنَ السَّتْرِ وَالْإِظْهَارِ او په شهادت فی الحدود کې د ګواهئ پټولو او ښکاره کاوه په منځ کې اختيار دې. لِأَنَّهُ بَيْنَ حِسْبَتَيْنِ إِقَامَةِ الْحَدِّ وَالتَّوَقِّي عَنِ الْهَتْكِ ځکه چې ګواهی د دوې (دوه) اجرونو د حد قائمولو اود مسلمانانو د پرده اخستلو نه د بچ کاوه په منځ کې ده. وَالسَّتْرُ أَفْضَلُ خو پټواړه افضل دی.
>
> حل اللغة: ① يخير-اختيار ورکولې شی-② الستر-پټيدل-③ الاظهار-ښکاره کول-④ حسبتين-تثنيه د حسبة ،اجر

تشريح:- شيخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی. که يوکس په حدود کې ګواه وی. نوهغه ته اختيار دې. که غواړی ګواهی دې ورکړی. اود مبتلی به عيب دې ښکاره کړی. اوکه زړه نې غواړی. ګواهی دې نه ورکوی. د هغه د عيب پرده پوشی دې اوکړی. ځکه چې ګواه په دواړه صورتونوکې د اجر او ثواب مستحق دې. په دې طريقه که ده ګواهی ورکړله. نود حد الهی قائمولو په وجه به مستحق د ثواب وی. اوکه ګواهی نې ورنکړله. نود يو مسلمان د پردې اخستلو نه د بچ کيدلو په وجه به د ثواب مستحق وی. بهرحال په دواړه صورتونوکې مستحق د ثواب دې. خود حدود په بدله کې ګواهانو ته اګرچه د ستر او اظهار (پټولو او ښکاره کولو) دواړو اختيار دې. خو ستر يعنی ګواهی نه ورکول افضل دی.

> لِقَوْلِهِ ﷺ لِلَّذِي شَهِدَ عِنْدَهُ دليل دا دې چې رسول الله ﷺ هغه کس ته چاچه د رسول الله ﷺ په وړاندې ګواهی ورکړې وه. {لَوْ سَتَرْتَهُ بِثَوْبِكَ لَكَانَ خَيْرًا لَكَ} (١) ووئيل که تا دا پخپلې کپړې سره پټه کړې وې. نو ستا لپاره غوره وه. وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ سَتَرَ عَلَى مُسْلِمٍ سَتَرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ} (٢) او نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی. چه کوم کس د يو مسلمان په عيب باندې پرده واچوله الله تعالی به په دنيا او آخرت کې دده په عيب باندې پرده واچوی. وَفِيمَا نُقِلَ مِنْ تَلْقِينِ الدَّرْءِ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَأَصْحَابِهِ رضی الله عنهم (٣) اود حد دفع کاوه تلقين کوم چې د رسول الله ﷺ اود هغه د صحابو رضی الله عنهم نه

(١) رواه أبوداود فی الحدود باب ٧ رقم ٤٣٧٧ والنسائی فی السنن الكبرى (٤\٣٠٤) رقم ٧٢٧٤_

(٢) أخرجه البخاری فی المظالم باب لا يظلم المسلم المسلم ولا يسلمه ومسلم فی البر والصلة باب تحريم الظلم)_

(٣) أما تلقينه ﷺ فقد تقدم فی باب الحدود فی حديث ماعز رضی الله عنه حيث قال له النبی ﷺ لعلك قبلت أو غمزت أو نظرت الحديث وأما



> منقول دې. دَلَالَةٌ ظَاهِرَةٌ عَلَى أَفْضَلِيَّةِ السَّتْرِ هغه د پټولو په افضليت باندې ښکاره دليل دې.

حل اللغة: ① ثوب-جامه-② تلقين-تاکيد-③ افضلية-غوره والې-④ نقل-نقل شوی دی

تشريح:- نقلی دليل خو دادې. چه هزال نومې سړی چې کله حضرت ماعز اسلمی رضی الله عنه د زنا په اقرار باندې راوچت کړو. اوماعز د زنا اقرار اوکړو. او بيا دوی ته د رجم حکم اوکړې شو. نود الله تعالی رسول ﷺ هزال ته اوفرمائيل. ﴿لو سترته بثوبك وفي رواية بردائك لكان خيراً لك﴾ يعنی که تا ماعز پخپله کپړه يا خپل پټو (څادر) سره پټ کړې وو. يعنی هغه دې د زنا په اقرار باندې نه تيارولو. (يعنی نه راضی کولو) نو ستا لپاره به غوره وه. ددې حديث نه معلوميږی. چه د حدود په سلسله کې ګواهی نه ورکول افضل دی. ② په دوهم حديث کې دی ﴿من ستر على مسلم ستر الله عليه في الدنيا والآخرة﴾ يعنی که يوکس د يو مسلمان پرده اوساتی. نو الله تعالی به په دنيا او آخرت کې دده پرده اوساتی. ځکه چې الله تعالی پخپله هم ستار دې. او ستر خوښوی. ③ د ستر په افضليت باندې دا دليل هم دې چه د رسول الله ﷺ او ددوی د صحابو رضی الله عنهم نه د حدودو دفع کاوه په سلسله کې تلقين منقول دې. يعنی دوی او ددوی صحابو رضی الله عنهم به حتی الامکان کوښښ کولو. چه په کومه طريقه حد لرې شی. لکه د رسول الله ﷺ نه منقول دی. چه کله حضرت ماعز رضی الله عنه د زنا اقرار اوکړو. نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل. تا به ښکل کړې وی. تا به کتلې وی. يعنی تا به مچی کول يا کتل د زنا خيال کړې

وی. خو ددې تلقين باوجود چې کله ماعز رضی الله عنه د زنا اقرار کولو. نو هله رسول الله ﷺ د رجم حکم اوفرمائيلو. اود صحابو رضی الله عنهم نه هم د حدودو دفع کاوه تلقين منقول دې. لکه نقل دی چې ابومسعود انصاری رضی الله عنه له يوه ښځه راوستلې شوه. چه هغې اوښ پټ کړې وو. ابومسعود رضی الله عنه هغې ته اووئيل. ﴿أسرقت﴾ آيا تا غلا کړې ده. ﴿قولي لا﴾ ته ،، لا ،، اووايه. يعنی انکار اوکړه. ﴿فقالت لا فتركها﴾ نو هغې لا اووئيل. نو ابومسعود انصاری رضی الله عنه هغه پريخودله. دغه ډول د حضرت عمر، حضرت علی، اود حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه د حد دفع کاوه تلقين منقول دې. نود رسول الله ﷺ اود صحابه کرامو رضی الله عنهم نه د حد دفع کاوه په سلسله کې تلقين منقول کيدل په حدودو کې د ګواهئ د نه ورکاوه په فضيلت باندې ښکاره دليل دې.

اعتراض: خو دلته کې دا اعتراض کيدای شی. چه ګواهی نه ورکول د الله تعالی د قول ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ﴾ معارض دی. او په حدودو کې د ګواهئ نه ور کاوه په افضليت باندې چې کوم احاديث ذکر کړې شو. هغه واړه اخبار احاد دی. او په خبر واحد سره مطلق کتاب مقيد کول هم جائز نه دی.

خواب: ددې خواب دادې. چه آيت ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ﴾ د حقوق العباد په شهادت باندې محمول دې. او په دې باندې قرينه د آيت سياق يعنی آيت مداينت او اجماع ده. اود الله تعالی قول ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ دې. يعنی کوم خلګ چې غواړی. چه بدکاری دې عام وی په ايمان والا کې، د هغوی لپاره دردناك عذاب دې. په دې آيت کې د ګناه خورولو نه منع شوې ده. اود بدئ ګواهی ورکولوکې د بدئ خورول دی. په دې وجه حدودو کې د زنا وغيره ګناهونو ګواهی نه ورکول افضل ګرځولی شوی دی. او آيت ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ﴾ د حقوق العباد په شهادت باندې محمول دې. يعنی د حقوق العباد ژوندی کاوه په لحاظ سره ګواهی مه پټوئ.

> إِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ أَنْ يَشْهَدَ بِالْمَالِ فِي السَّرِقَةِ خودا چې په غلا کې د ګواه لپاره دمال ګواهی ورکول واجب دی. فَيَقُولُ: أَخَذَ إِحْيَاءً لِحَقِّ الْمَسْرُوقِ مِنْهُ نو ګواه به د مسروق منه حق ژوندی کاوه دپاره ،، اخذ ،، (واخستلو) وائی. وَلَا يَقُولُ سَرَقَ

تلقين الصحابة رضی الله عنهم ففيه روايات عن أبی بكر وعمر وعثمان وعلی وابنه الحسن وأبی هريرة وأبی مسعود و أبی الدرداء وعمرو بن العاص وأبی واقد الليثی رضی الله عنهم نقل هذه الروايات كلها الإمام الزيلعی & فی نصب الرأی (١٦١\٤)_

مُحَافَظَةً عَلَى السَّتْرِ اود ستر د محافظت په لحاظ سره به،، سرق،، (غلاټي کړو) نه وائي.

حل اللغة: ① يجب -وجبيږي- ② السرقة-غلا- ③ احياء-ژوندي کول- ④ محافظة-حفاظت

تشريح:- په حدودو کي ګواهي پواره افضل دی.خو په حد سرقه کي ګواهي پواره اګرچه غوره دی.خود مال ګواهي ورکول واجب دی.نود مسروق منه (د کوم کس مال چي پټ شوي وی) حق ژوندی کاوه لپاره به ګواه دا وائي چه فلاني دده مال اخستي دي.او په مسلمان د پرده اچولو په لحاظ به داسي نه وائي.چه ده غلا کړي ده.

وَلِأَنَّهُ لَوْ ظَهَرَتِ السَّرِقَةُ لَوَجَبَ الْقَطْعُ او خکه که سرقه ښکاره شوه.نو قطع د يد به واجب وی. وَالضَّمَانُ لَا يُجَامِعُ الْقَطْعَ او ضمان قطع د يد سره چونکه نه جمع کيږی. فَلَا يَحْصُلُ إِحْيَاءُ حَقِّهِ په دي وجه به دده د حق ژوندی کول هم نه حاصليږی.

حل اللغة: ① ظهرت -ښکاره شوي وي- ② السرقة-غلا- ③ القطع-کټ کول- ④ يجامع-جمع کيږی

تشريح:- دوهم دليل دادي.چه قطع د يد او ضمان دواړه نه جمع کيږی.يعنی که مال مسروق د غل سره نه وی.نود غل لاس به کټ کولي شی.خو په هغه به ضمان واجب نه وی. اودا خبره هم منلي شوي ده.چه قطع د يد حق الله دی.او ضمان حق العبد دي.نو دلته کي که کلية (د قاعدي مطابق) ستر (او پرده پوشی) اوکړي شی.يعنی اظهار بالکل اونکړي شی.نود قطع يد او ضمان دواړو ابطال به اوشی.او په دي کي به حق العبد يعنی ضمان به هم ضائع شی.حالانکه د حق العبد ضائع کول ناجائز دی.اوکه ګواه د غلا اظهار اوکړی.او په دي وجه قطع د يد اوشی.او ضمان واجب نشی.نو الله چي غنی دي.هغه ته به په بنده باندي (چي محتاج دي) ترجيح ورکول لازم شی.حالانکه دا هم ناجائز دی.نو هرکله چي دواړه صورتونه ناجائز دی.نو متعين شو.چه ګواه په مال باندي شهادت ورکړی.اوپه سرقه باندي شهادت ورنکړی.يعنی صرف دا ګواهي ورکړی.چه هغه مال اخستي دي.اودا دي نه وائي.چه هغه غلا کړي ده.په دي صورت کي به د بنده حق ژوندي شی.خکه چي په دي صورت کي به په غل باندي ضمان خو واجب شی.خو دده لاس به نشی کټ کولي.ضمان خو به خکه واجب وی.چه ګواهانو په مال اخستلو باندي ګواهي ورکړي ده.او قطع د يد به خکه نه کيږی.چه ګواهانو سرقه يعنی په غلا باندي ګواهي نه ده ورکړي.

**په حدود کښي د ګواهانو لپاره د ګواهئ د پټولو حکم**

وَالشَّهَادَةُ عَلَى مَرَاتِبَ قدوری ﷫ فرمائي.چه د شهادت يو څو مرتبي دی. مِنْهَا الشَّهَادَةُ فِي الزِّنَا يُعْتَبَرُ فِيهَا أَرْبَعَةٌ مِنَ الرِّجَالِ په هغي کي يو د زنا شهادت دي.په زناکي د څلور سړو شهادت معتبر دي.

حل اللغة: ① مراتب -درجي- ② يعتبر -معتبرولي شی\معتبردی- ③ اربعة-څلور- ④ الرجال-جمع د رجل ،سړي

تشريح:- امام قدوری ﷫ فرمائي.چه د شهادت يوڅو مرتبي دی.① شهادت فی الزنا په دي کي د څلورو سړو ګواهي معتبر ده.خکه د الله تعالی ارشاد دي. ﴿وَالَّتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِن نِّسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنكُمْ﴾ يعنی هغه ښځي چي بدکاری اوکړی.په هغوی باندي د خپلو نه څلور سړی ګواهان راوله.په دي آيت کي لفظ د ﴿أَرْبَعَةً﴾ د څلور په عدد اود ګواهانو په مذکر کيدلو کي نص دي.د څلور په عدد باندي نص کيدل خو ښکاره دی.اود ګواهانو په مذکر کيدلوکي خکه نص دي.چه لفظ د ﴿أَرْبَعَةً﴾ مؤنث دي.اود عربی قاعدي په اعتبار سره د دريو نه نهو پوري يعنی د ثلاثه نه تسعة پوري عدد که مذکر وی.نو معدود مؤنث راځی.او که عدد مؤنث وی.نو معدود مذکر وی.دلته په آيت کي چونکه لفظ د،،أَرْبَعَةً،، مؤنث دي.خکه به ددي معدود مذکر وی.نو ثابته شوه.چه د زنا ثابتولو لپاره د څلور سړو ګواه کيدل ضروری دی.

اود سورة نور آيت دي. ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً﴾ کوم خلګ چي پاکدامنو ښځو باندي د زنا تهمت لګوی.بيا دوی څلور ګواهان رانه وستل.نو دوی اتيا کوړي اووهئ.ددي آيت نه هم ثابتيږی.چه د زنا ثابتولو لپاره د څلورو سړو ګواهان کيدل ضروری دی.بعض حضرات فرمائي.چه زنا چونکه د دوي (دوه) سړو فعل دي.په دي وجه په دوی کي په هريو باندي د دوي (دوه) دوي (دوه) ګواهانو کيدل شرط دی.



لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِن نِّسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنكُمْ﴾ دليل دا دي الله تعالی فرمائيلي دي.چه ستاسو په ښځو کي څوک زنا اوکړی.نو په دوی باندي د خپلو نه څلور ګواهان طلب کړئ. وَلِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ﴾ او خکه چي الله تعالی فرمائيلي دی.بيا چي کوم خلګ څلور ګواهان رانه ولی.

حل اللغة: ① الفاحشة -زنا\دبي حيائي کار- ② نساء-ښځي- ③ اربعة-څلور- ④ شهداء-جمع د شاهد ،ګواه

تشريح: د ترجمي نه مطلب واضح دي

وَلَا تُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ النِّسَاءِ او په زناکي د ښځو ګواهي قبول نه ده. لِحَدِيثِ الزُّهْرِيِّ ﷫: مَضَتِ السُّنَّةُ مِنْ لَدُنْ رَسُولِ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَالْخَلِيفَتَيْنِ مِنْ بَعْدِهِ خکه د زهری حديث دي.چه د رسول الله ﷺ او ددوی نه روسته د دواړه خلفاؤ د وخت نه دا سنت جاری دي. أَنْ لَا شَهَادَةَ لِلنِّسَاءِ فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ (1) چه په حدودو او قصاص کي د ښځو ګواهي نشته.

حل اللغة: ① مضت -جاری ده- ② السنة-طريقه- ③ الخليفتين-تثنيه د خليفه،مراد تري حضرت ابوبکر او عمر ﷠ دي

تشريح:- ابو الحسين قدوری ﷫ فرمائي. په زنا کي به د ښځو ګواهي نه قبليږی.دليل د زهری حديث دي.يعنی رسول الله ﷺ او ددوی نه روسته صديق اکبر او فاروق اعظم ﷠ د زماني نه دا سنت جاری دي.چه په حدودو او قصاص کي د ښځو ګواهي معتبر نه ده.علامه مرغينانی خاص طور باندي د صديق اکبر او فاروق اعظم ﷠ ذکر خکه کړي دي.چه ددوی دواړو په حق کي مدنی آقا ﷺ فرمائيلي دی. ﴿اقتدوا باللذين من بعدي أبي بكر وعمر﴾ يعنی زما نه روسته ددوی دواړو يعنی د ابوبکر او عمر ﷠ اقتداء کوئ.

وَلِأَنَّ فِيهَا شُبْهَةَ الْبَدَلِيَّةِ لِقِيَامِهَا مَقَامَ شَهَادَةِ الرِّجَالِ او خکه چي د ښځو په شهادت کي د بدليت شبه ده.خکه چي د ښځو شهادت د سړو د شهادت قائم مقام دي. فَلَا تُقْبَلُ فِيمَا يَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ نو په داسي معامله کي به نه قبليږی.کوم چي په شبهاتو سره دفع کيږی.

حل اللغة: ① الرجال -جمع د رجل ،سړي- ② يندرئ-دفع کولي شی- ③ الشبهات-جمع د شبه ،شک- ④ مقام-ځائي

تشريح:- په زنا کي د ښځو د ګواهئ په نه معتبر کيدلو باندي عقلی دليل دادي.چه د ښځو په ګواهئ کي د بدليت شبه ده.اود بدليت شبه خکه ده. چي د ښځو ګواهي د سړو د ګواهئ قائم مقام وی.لکه چي د الله تعالی ارشاد دي. ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ۖ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ﴾ او ګواه کړئ دوي (دوه) شاهدان د خپلو سړو نه بيا که نه وی.دوي (دوه) سړی نو يو سړي او دوي (دوه) ښځي ،، اوګورئ.الله تعالی اوفرمائيل.که دوي (دوه) سړي نه وی.نو يوسړي او دوي (دوه) ښځي به ګواهي ورکوی. معلومه شوه. چي ښځي په ګواهي ور کاوه کي اصل نه دی.بلکه د سړو په غيرموجودګئ کي ددوی قائم مقام کيداي شی.

سوال:خو دلته يو سوال دي.هغه داچه علامه مرغينانی ﷫ اوفرمائيل.چه د ښځو په ګواهئ کي د بدليت شبه ده.حالانکه آيت ﴿فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ﴾ نه معلوميږی.چه د ښځو په ګواهئ کي د بدليت شبه نشته.بلکه په حقيقت کي بدليت دي.

ځواب:ددي ځواب دادي.چه په حقيقت کي به بدليت هغه وخت وو.کله چي د دوي (دوه) سړو ګواه موجود کيدلو په صورت کي د يو سړي او دوي (دوه) ښځو ګواه جوړول ممتنع وو.حالانکه داسي نه ده.بلکه د دوي (دوه) سړو ګواه موجود کيدلو باوجود د يو سړي اود دوي (دوه) ښځو ګواه جوړول جائز دی.نود دوي (دوه) سړو ګواه موجود کيدلو باوجود د يو سړي اود دوي (دوه) ښځو ګواهي جائز کيدل ددي خبري علامت دي.چه د ښځو په ګواهئ کي په

(1) من رواية الزهری أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه كذا فی نصب الراية (٤\١٦٤)_

حقیقت کي بدلیت نشته.بلکه د بدلیت شبه ده.او هرکله چي د ښځو په ګواهئ کي د بدلیت شبه ده.نود ښځو ګواهي به په هغه معاملاتوکي نه قبلیږي.کوم معاملات چي په شبه سره ساقطیږي.او حدزنا چونکه په شبه سره ساقطیږي.په دي وجه د حدزنا ثابتولو لپاره به هم د ښځو ګواهي نه قبلیږي.په حدودو او قصاص کي د ګواهانو تعداد

### د شهادت مراتب او په زناکښي د ګواهانو تعداد

**وَمِنْهَا الشَّهَادَةُ بِبَقِيَّةِ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ** او ددي نه په پاته حدودو او قصاص کي شهادت دي. **تُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ** چي په دي کي د دوي (دوه) سړو ګواهي قبلیږي.

**تشریح:-** د شهادت دویمه مرتبه حد زنا نه علاوه نور حدود مثلاً حد قذف، حدشرب خمر،او حدسرقه او قصاص کي شهادت دي.چه د حد زنا نه علاوه په نورو حدودو او قصاص کي د دوي (دوه) سړو شهادت معتبر دي.

**لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ}** دلیل دا دي الله تعالی فرمائیلي دي.چه پخپلو سړو نه دوي (دوه) سړي ګواه کړئ. **وَلَا تُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ النِّسَاءِ لِمَا ذَكَرْنَا** او په دي حدودو او قصاص کي به د ښځو ګواهي نه قبلیږي.د هغه دلائلو په وجه کوم چي مونږ ذکرکړي دي.

**تشریح:-** دلیل د الله تعالی قول . ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ﴾ دي.په آیت کي د ﴿ شَهِيدَيْنِ ﴾ تثنیه صیغه د ګواهانو په دوي (دوه) کیدلو باندي او ﴿ مِنْ رِجَالِكُمْ ﴾ لفظ د ګواهانو په مذکر ( یعني سړي) کیدلو باندي دلالت کوي.علامه مرغیناني ﷫ فرمائي.چه د حد زنا نه علاوه په حدودو او قصاص کي هم د ښځو ګواهي غیر معتبر ده.دلیل د زهري حدیث اود بدلیت شبه ده.چه ددي تقریر د تیره شوي تشریح لاندي تیر شوي دي.

### په پاته حقوقو کښي د ګواهانو تعداد

قَالَ: **وَمَا سِوَى ذَلِكَ مِنَ الْحُقُوقِ يُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ** اود حدودو او قصاص نه علاوه په نورو حقوقو کي د دوي (دوه) سړو ګواهي یاد یو سړي اود دوي (دوه) ښځو ګواهي مقبول ده. **سَوَاءٌ كَانَ الْحَقُّ مَالًا أَوْ غَيْرَ مَالٍ** برابره ( خبره) ده.که دغه حق مال وي. **مِثْلُ النِّكَاحِ وَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ وَالْعِدَّةِ وَالْحَوَالَةِ وَالْوَقْفِ وَالصُّلْحِ وَالْوَكَالَةِ وَالْوَصِيَّةِ وَالْهِبَةِ وَالْإِقْرَارِ وَالْإِبْرَاءِ وَالْوَلَدِ وَالْوِلَادِ وَالنَّسَبِ وَنَحْوِ ذَلِكَ** او که غیرمال وي.لکه نکاح، طلاق، وکالت، وصیت، او ددي پشان دي.

**تشریح:-** د شهادت دریمه مرتبه داده.چه د حدودو او قصاص نه علاوه په نورو حقوقو کي د دوي (دوه) سړو ګواهي یاد یو سړي اود دوي (دوه) ښځو ګواهي معتبر ده.هغه حق که د مال د قبیلي څخه وي.لکه بیع،اوکه د غیرمال قبیلي څخه وي.لکه نکاح، طلاق، وکالت، وصیت، عتاق، رجعت،او نسب.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ إِلَّا فِي الْأَمْوَالِ وَتَوَابِعِهَا** حضرت امام شافعي ﷫ فرمائي.چه د ښځو ګواهي سړو سره ( په هیڅ امرکي هم) نه قبلیږي. خو په مال او ددي په توابع کي ( قبلیږي).

**تشریح:-** حضرت امام شافعي ﷫ فرمائي.چه د ښځو شهادت سړو سره په هیڅ معامله کي معتبر نه دي.سوائي د اموال او ددي د توابع نه (چي په دي کي قبلیږي) یعني مال او ددي توابع شیان یعني اعاره، اجاره، کفالة، میعاد،او شرط خیار وغیره کي د ښځو ګواهي د سړو سره معتبر ده.امام مالك ﷫ هم ددي قائل دي.اویو روایت د امام محمد ﷫ هم دادي.

**لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهَا عَدَمُ الْقَبُولِ** دلیل دا دي چي د ښځو په ګواهئ کي اصل نه قبلول دي. **لِنُقْصَانِ الْعَقْلِ وَاخْتِلَالِ الضَّبْطِ وَقُصُورِ الْوِلَايَةِ** او خانله د خلورو ښځو ګواهي نه قبلیږي.

حل اللغة: ① عدم-نشتوالي-② نقصان\قصور-کمي-③ اختلال-خلل پیدا کیدل-④ الضبط-یاداشت



**تشریح:-** د امام شافعي ﷫ دلیل دادي.چه د ښځو په ګواهئ کي اصل دادي.چه ددوي ګواهي بالکل قبول نشي.ځکه چي ددوي په عقل کي نقصان دي.اود نسیان د غلبي په وجه په ضبط ( یاد داشت) کي خلل دي.یعني ددوي یادداشت ډیرښه نه دي.

**وَلِهَذَا لَا تُقْبَلُ فِي الْحُدُودِ** دلیل دا دي چي دوي د امیر (خلافت او امارت) جوړیدلو لائق نه دي.په دي وجه په حدودوکي ددوي ګواهي نه قبلیږي. **وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَرْبَعِ مِنْهُنَّ وَحْدَهُنَّ** او خانله د خلورو ښځو ګواهي نه قبلیږي. **فَإِنَّهَا لَا تَصْلُحُ لِلْإِمَارَةِ**

**تشریح:-** اود خلافت او امارت صلاحیت نه کیدلو په وجه ددوي په ولایت کي قصور دي.حالانکه د ګواه لپاره کامل العقل، تام الضبط او اهل ولایت کیدل ضروري دي.نو هرکله چي په ښځو کي نقصان عقل، اختلال ضبط، او قصور ولایت دري واړه خبري موجود دي.نو ددوي ګواهي څنګه معتبر کیداي شي.چونکه د ښځو په ګواهئ کي نه قبلیدل اصل دي.په دي وجه حدودو او قصاص کي ددوي ګواهي نه قبلیږي.اود خانله ځلورو ښځو شهادت معتبر نه وي.

**إِلَّا أَنَّهَا قُبِلَتْ فِي الْأَمْوَالِ ضَرُورَةً** خودا چي په مالونو کي د اړتیا په وجه قبول شوي ده.

**تشریح:-** سوال:یا تې شو داچه د ښځو په ګواهئ کي اصل دادي.چه قبول نشي.نو بیا په اموال اود اموالو په توابع کي ددوي ګواهي ولي قبلولي شي.

ځواب: د حضرت امام شافعي ﷫ د اړخه ددي ځواب دادي.چه په اموال او توابع اموال کي د ښځو ګواهي د حقوق العباد ژوندي کاوه لپاره قبلولي شي.ځکه چي د اموال اود اموالو د توابع درجه حقیر او واقع کیدل کثیر دي.نو نه اموال اود اموالو په توابع کي هم د دوي (دوه) سړو ګواهي ضرر اوګرځولي شي.نو چونکه د اموالو اسباب کثیر الوقوع دي.په دي وجه هر ځل دوي (دوه) سړي ګواه لټون کاوه کي به حرج لاحق کیږي.حالانکه په شریعت د اسلام کي حرج لرې کړې شوي دي.په دي وجه اموال اوپه توابع د اموالوکي د سړو سره د ښځو ګواهي هم معتبر ګرځولي شوي ده.

**وَالنِّكَاحُ أَعْظَمُ خَطَرًا وَأَقَلُّ وُقُوعًا** اود نکاح مرتبه چونکه عظیم او ددي واقع کیدل قلیل دي. **فَلَا يَلْحَقُ بِمَا هُوَ أَدْنَى خَطَرًا وَأَكْثَرُ وُجُودًا** ځکه به نکاح هغه شئ سره نه لاحق کیږي.د کوم درجه حقیر او واقع کیدل زیات وي.

حل اللغة: ① اعظم -زیاته-② خطر-ویره\خطره-③ ادنی-کم-④ یلتحق-ملحق کیږي

**تشریح:-** سوال:خوکه دا اوویلي شي.چه غیراموال یعني نکاح ، طلاق وغیره هم اموال سره لاحق کول.او په دي کي هم د سړو سره د ښځو ګواهي قبلول پکار وو.

ځواب: د حضرت امام شافعي ﷫ د اړخه ددي ځواب دادي.چه نکاح، طلاق وغیره شیان د درجي په اعتبار سره عظیم دي.اود وقوع په اعتبار سره قلیل دي.او وړاندي تیر شوي دي.چه اموال د درجي په اعتبار سره حقیر اود وقوع په اعتبار سره کثیر دي.او یو عظیم المرتبت، قلیل الوقوع شئ د حقیر المرتبت کثیرالوقوع شئ سره نشي لاحق کیدلي.ځکه د الحاق لپاره ضروري دي.چه د ملحق او ملحق به په منځ کي یو قسم مناسبت وي.حالانکه د اموال او غیراموال یعني د نکاح وغیره په منځ کي د ذکر شوي تفاوت په وجه هیڅ مناسبت نشته.نوهرکله چي څه مناسبت نشته.نو نکاح وغیره غیر اموال د اموال سره لاحق کیدلي هم نشي.

**وَلَنَا أَنَّ الْأَصْلَ فِيهَا الْقَبُولُ لِوُجُودِ مَا يُبْتَنَى عَلَيْهِ أَهْلِيَّةُ الشَّهَادَةِ** او زمونږ دلیل دادي.چه د ښځو په ګواهئ کي قبلول اصل دي.ځکه چي په ( ښځوکي ) هغه شیان موجود دي.په کومو چي د شهادت د اهلیت مدار دي. **وَهُوَ الْمُشَاهَدَةُ وَالضَّبْطُ وَالْأَدَاءُ** او هغه مشاهده، ضبط ( یادداشت)،او ادا ده. **إِذْ بِالْأَوَّلِ يَحْصُلُ الْعِلْمُ لِلشَّاهِدِ** ځکه چي د مشاهده په وجه ( ګواه) ته علم حاصلیږي. **وَبِالثَّانِي يَبْقَى** او په ضبط( یادداشت) سره علم پاته کیږي. **وَبِالثَّالِثِ يَحْصُلُ الْعِلْمُ لِلْقَاضِي** او په ادا

کاوه سره قاضی ته علم حاصلیږي. وَلِهٰذَا يُقْبَلُ إِخْبَارُهَا فِي الْأَخْبَارِ په دې وجه احادیثوکي د ښځې خبر ورکول مقبول دی.

**حل اللغة:** ① یبتی-چه قائمیږي -② المشاهدة-لیدل-③ الاخبار-جمع د خبر-④ اخبار-خبرور کول

**تشریح:**- زموږ دلیل دادې چه د ښځو په ګواهۍ کې اصل دادی.چه قبول شي.ځکه چې په کومو څیزونو باندې د شهادت د اهلیت مدار دې.( یعني مشاهده، ضبط، او اداء) هغه شیان په ښځو کې موجود دي.او په دې څیزونو باندې د شهادت د اهلیت مدار ځکه دې.چه د مشاهدې په ذریعه به ګواه ته د هغه شي علم وی.د کوم شي په اړه کې چې ګواهي ورکوی.او ضبط یعني په ښه غور سره اوریدلو، پوهیدلو،او محفوظ کاوه په وجه به د شهادت ادا کاوه پورې علم پاته وی.اود شهادت ادا کاوه په وجه به قاضی ته علم کیږي.نو هرکله چې په ښځوکې هغه شیان موجود دي.په کومو چې د شهادت د اهلیت مدار دې.نود ښځو شهادت به قبلولې شي.ځکه چې د ښځو په ګواهۍ کې اصل دادی.چه قبول شي.په دې وجه احادیثوکې د ښځې خبر ورکول یعني روایت کول معتبر دی.او محدثین د ښځو روایت کړې شوی احادیث قبلوی هم.نوهرکله چې په احادیثوکې د ښځې خبر ورکول معتبر دی.نو ددوی شهادت به هم معتبر وی.

وَنُقْصَانُ الضَّبْطِ بِزِيَادَةِ النِّسْيَانِ انْجَبَرَ بِضَمِّ الْأُخْرَىٰ إِلَيْهَا اود نسیان زیات کیدلو په وجه چې په ضبط ( یادداشت) کې کوم نقصان دی.هغه ددې سره د دویمې ښځې په ملاوولو سره پوره شو. فَلَمْ يَبْقَ بَعْدَ ذٰلِكَ إِلَّا الشُّبْهَةُ نو ددې نه روسته هیڅ نقصان پاتې نشو. فَلِهٰذَا لَا تُقْبَلُ فِيمَا يَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ سوا د شبه نه.په دې وجه هغه معاملاتوکې کوم چې په شبهاتو سره ردکیږي.د ښځو ګواهي نه قبلیږي. وَهٰذِهِ الْحُقُوقُ تَثْبُتُ مَعَ الشُّبُهَاتِ اودا حقوق خو په شبهاتو سره ثابتیږي. وَعَدَمُ قَبُولِ الْأَرْبَعِ عَلَىٰ خِلَافِ الْقِيَاسِ كَيْ لَا يَكْثُرَ خُرُوجُهُنَّ اود څلورو ښځو ګواهي نه قبلیدل خلاف قیاس دی.چه د ښځو وتل زیات نه وی.

**حل اللغة:** ① الضبط-یاداشت-② النسیان-هیره-③ انجبر-پوره شو، کامل شو-④ الضم-یوځاې کیدل

**تشریح:**- په دې عبارت سره دامام شافعي رحمه الله د دلیل ځواب ورکوی حاصل د ځواب دادې. که دا خبره اومنلې شي.چه د ښځې ضبط یعني یادداشت کمزورې دې.نو ددې سره د دویمې ښځې په ملاوولو سره ددې تلافي کیږي( یعني دا کمې پوره کیږي).یعني څه به یوه یاد اوساتي.او څه به بله ښځه یاد اوساتي.دغه ډول به د دواړو ښځو ضبط ملاؤ شي.اود یوسړي د ضبط برابر به شي.او هرکله چې د دویمې ښځې په ملاوولو سره ضبط پوره شو.نو ددې نه روسته اوس هیڅ نقص پاتې نشو.

صرف شبه د بدلیت پاته ده.نود بدلیت د شبه په وجه په هغه معاملاتوکې کوم چې د شبهاتو په وجه ساقطیږي ( لکه حدود او قصاص) د ښځو ګواهي نه قبلیږي.خو کوم حقوق چې د شبهاتو باوجود ثابتیږي.په هغې کې به د ښځو ګواهي قبلولې شي.او ذکر شوی حقوق یعني نکاح، طلاق وغیره چونکه د شهادت باوجود ثابتیږي.په دې وجه به په دې کې د ښځو ګواهي قبلولې شي.د نکاح او طلاق د شبهاتو باوجود ثابتیدل خو ښکاره دی.ځکه چې دا دواړه هزل سره ثابتیږي.لکه د رسول الله ﷺ ارشاد دې. «ثلاث جدهن جد وهزلهن جد، النكاح والطلاق والعتاق» نو کوم شي چې هزل سره ثابتیږي.هغه به شبهاتو سره په درجه اولی ثابتیږي.او پاتې شو وکالت،او وصیت، او اموال.نو په دې کې ،،کتاب القاضی الی القاضی،،او،،شهادة علی الشهادة،،قبلیدل ددې خبرې علامت دې.چه دا شیان شبه سره هم ثابتیږي.

‌علامه مرغیناني رحمه الله د امام شافعي رحمه الله په دلیل کې د ضبط د نقصان ځواب ذکر کړې دې.خود عقل د نقصان اود ولایت د قصور ځواب نې نه دې ذکر کړې.د صاحب د عنایه رحمه الله د بیان مطابق د عقل د نقصان ځواب دادې.چه په کوم عقل باندې د تکلیف مدار دې.د ښځو په هغه عقل کې هیڅ نقصان نشته.د هغې تفصیل دادې.چه د نفس انساني لپاره څلور مرتبې دی. ① رومبۍ مرتبه د عقل د استعداد ده.ددې نوم عقل سیولاني دې.دا مرتبه د بدل په ابتداء کې ټولو انسانانو ته حاصل وی. ② دویمه مرتبه دا ده.چه د نظر او فکر په ذریعه د نظري او غیر



بدیهي څیزونو حاصلولو لپاره حواس په جزئیاتو کې استعمالولې شي.او بدیهیات حاصلولې شي.ددې نوم عقل بالملکه دې.اوهم دا مدار د تکلیف دې. ③ دریمه مرتبه داده.چه د اکتساب د احتیاج نه بغیر نظریات حاصل شي.ددې نوم عقل بالفعل دې. ④ څلورمه مرتبه داده چه نظریات مستحضر کړې شي.او هغې اړخ ته مشاهده متوجه شي.ددې نوم عقل مستفاد دې......ددې تفصیل نه روسته اوګورئ.چه د تکلیف مدار په عقل بالملکه باندې وی.اود ښځو دحال مشاهده کاوه نه پته لګی.چه ددوی په عقل بالملکه کې هیڅ نقصان نشته.ځکه چې کله ښځې په جزمي امورو کې حواس استعمالوی.نو دوی ته بدیهیات حاصلیږي.او که هیرشی نو معمولي شان تنبیه کافي کیږي.اوکه د ښځو په عقل بالملکه کې نقصان وو.نود ارکان دین په سلسله کې به د ښځو او سړو تکلیف جلا جلا وو.حالانکه داسې نه ده.بلکه د دواړو تکلیف برابر دې.نو ثابته شوه.چه د ښځو عقل بالملکه کې هیڅ نقصان نشته.

‌اعتراض*خو که دا اعتراض اوکړې شي.چه د رسول الله ﷺ «هن ناقصات عقل» فرمائیل د بیان شوی تقریر معارض دې.نو ددې ځواب دادې.چه د الله د رسول ﷺ قول «هن ناقصات عقل» کې دعقل نه مراد عقل بالفعل یعني دریمه مرتبه ده.هم په دې وجه ښځې د ولایت، خلافت،او امارت لیاقت نه لري.حاصل داچه رسول الله ﷺ ښځو ته ناقصات عقل یعني دریمه مرتبه یعني د عقل بالفعل په اعتبار سره فرمائیلی دی.اود احکامو د تکلیف مدار د دویمې مرتبې په عقل یعني په عقل بالملکه دې.نو هیڅ تعارض نشته.د قصور ولایت ځواب هم دادې.چه د ولایت لپاره د دریمې مرتبې عقل یعني عقل بالفعل ضروري دې.حالانکه په ښځه کې دا عقل ناقص دې.او په کوم عقل چې د تکلیف مدار دې.یعني عقل بالملکه،په هغې کې هیڅ نقصان نشته.

**تشریح:**- په دې عبارت سره د امام شافعي رحمه الله د قیاس ځواب ورکوی.حاصل د ځواب دادې.چه د قیاس تقاضا هم داده.چه هرکله د یوسړې په ځاې د دوې (دوه) ښځو ګواهي معتبر ده.نود دوې (دوه) سړو په ځاې د څلور ښځو ګواهي هم معتبر کیدل پکار ده.خو چونکه د څلورو ښځو د ګواهۍ په معتبر کیدلوکې به د ښځو خروج او بهر ته وتل زیات وی.حالانکه دا ممنوع دی.په دې وجه څلورو ښځو کې قیاس ترك کړې شو.او اوونیلی شو. چې ځائله د څلور ښځو ګواهي به نشي قبلولې.

## د ښځې د ګواهۍ معتبر کیدلو مواقع

قَالَ وَتُقْبَلُ فِي الْوِلَادَةِ وَالْبَكَارَةِ وَالْعُيُوبِ بِالنِّسَاءِ فِي مَوْضِعٍ لَا يَطَّلِعُ عَلَيْهِ الرِّجَالُ شَهَادَةُ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ فرمائی.او په ولادت، بکارت، اود ښځو د داسې ځایونو په عیبونو کې چې په هغې باندې سړې نشی خبریدلې.د یوې ښځې ګواهي به قبلولې شي.

**حل اللغة:** ① الولادة-پیدائش-② البکارة-هغه پیغله چې وطی شوې نه وی -③ الرجال-جمع د رجل ،سړې

**تشریح:**- د شهادت څلورمه مرتبه داده.چه په ولادت، بکارت، اود ښځو په بدن باندې داسې مخفي ( او پټ) عیبونه چې په هغې باندې صرف ښځې خبریدلې شي.او سړی نشی خبریدلې.په هغې کې د یوې ښځې شهادت کافي دې.د حضرت امام شافعي رحمه الله په نیز د څلورو ښځو شهادت ضروري دې.د امام شافعي رحمه الله دلیل دادې.چه د شهادت په باب کې دوې (دوه) ښځې د یو سړي قائم مقام وی.نود دوې (دوه) سړو قائم مقام به څلور ښځې وی.نو په کوم ځاې کې چې د سړو شهادت ورکول ممکن نه وی.نو هلته کې به د څلورو ښځو شهادت ورکول معتبر وی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {شَهَادَةُ النِّسَاءِ جَائِزَةٌ فِيمَا لَا يَسْتَطِيعُ الرِّجَالُ النَّظَرَ إِلَيْهِ} ([1]) دلیل دا دې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه کوم ځاې ته سړې نشی کتلې،په هغې کې د ښځو ګواهي جائز ده.

---

(١)غریبه الزیلعی ثم قال روی عبدالرزاق فی مصنفه ... عن الزهری قال مضت السنة علی أن تجوز شهادة النساء فیما لا یطالع علیه غیرهن من ولادة النساء وعیوبهن (نصب:١٦٥\٤)_

**تشریح:** - دلیل دا حدیث دی. ﴿قال رسول الله ﷺ شهادة النساء جائزة فيما لايستطيع الرجل النظر إليه﴾ یعنی د ښځو شهادت په هغه ځیزونو کی جائز دی.کوم شیان چې سړی نشی کتلې.

> وَالْجَمْعُ الْمُحَلَّى بِالْأَلِفِ وَاللَّامِ يُرَادُ بِهِ الْجِنْسُ فَيَتَنَاوَلُ الْأَقَلَّ. او جمع په الف لام سره معرّف ده.چه په دې سره جنس مراد وی.نو کمتر ته به ګډ وی. وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ فِي اشْتِرَاطِ الْأَرْبَعِ اودا حدیث د څلورو ښځو په شرط لګولوکې د امام شافعی ﷫ خلاف حجت دی.

**حل اللغة:** ① الجمع-جمع-② یراد-اراده کولې شی-③ یتناول -شاملیږی-④ اشتراط-شرط کولو

**تشریح:** - په دې حدیث وجه د استدلال په دې طریقه ده.چه لفظ د،،النساء،، معرف بالالف واللام ده.اود جمع معرف باللام نه جنس مراد وی.اود جنس اطلاق په قلیل او کثیر دواړو باندې کیږی.نو لفظ د،،النساء،، به قلیل ته هم ګډ وی.اود قلیل حقیقی مصداق یو دې.نود حدیث مطلب دا شو.چه کوم شیان سړې نشی کتلې.په هغې کې د یوې ښځې شهادت هم جائز دې.ددې حدیث تائید د حضرت حذیفه﷜ حدیث سره هم کیږی.د حذیفه﷜ حدیث دادې. ﴿أن النبي ﷺ أجاز شهادة القابلة في الولادة﴾ یعنی رسول الله ﷺ د دائی شهادت د ولادت په سلسله کې جائز ګرځولې دې.اودا ښکاره ده.چه دائی یوه ښځه وی.نود حذیفه﷜ حدیث سره هم ثابته شوه.چه په ولادت وغیره کې د یوې ښځې شهادت معتبر وی.علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.چه حدیث ﴿شهادة النساء جائزة﴾ د څلورو ښځو شهادت شرط کولوکې د امام شافعی ﷫ خلاف هم حجت دی.

> وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا سَقَطَتِ الذُّكُورَةُ لِيَخِفَّ النَّظَرُ او ځکه چې د مذکر کیدلو قید ساقط شو.چه کتل خفیف ( معمولی) وی. لِأَنَّ نَظَرَ الْجِنْسِ إِلَى الْجِنْسِ أَخَفُّ ځکه چې د جنس جنس ته کتل اخف دی. فَكَذَا يَسْقُطُ اعْتِبَارُ الْعَدَدِ نوهم دغه ډول به د عدد اعتبار ساقطیږی.

**حل اللغة:** ① سقطت-ساقط شو-② الذکورة-نارینه والې-③ یخف-معمولی شی\سپک شی-④ عدد-شمار

**تشریح:** - زموږ د اړخه عقلی دلیل دادې.چه په ولادت وغیره ځیزونوکې د ګواه مذکر او سړی کیدلو قید ځکه ساقط شوې دې.چه ښځې اړخ ته کتل کم ازکم وی.ځکه چې ښځې اړخ ته کتل حرام دی.اود ښځې ښځې اړخ ته کتل د سړې د کتلو په نسبت خفیف دی.یعنی د سړی ښځې اړخ ته کتل چې څومره غلیظ او بد دی.د ښځې ښځې اړخ ته کتل دومره غلیظ او بد نه دې.اودا خبره ځکه ده.چه ښځې اړخ ته په کتلو سره کتونکې ښځه کې شهوت کم راوځتیږی.څوکه کتونکې سړې وی.نو په هغه کې شهوت زیات راوځتیږی. ځکه د سړی ښځې اړخ ته د کتلو په مقابله کې د ښځې ښځې اړخ ته کتل اخف دی.نو هرکله چې ښځې اړخ ته کتل خفیف او معمولی کیدلو لپاره په ګواهانو کې د مذکر کیدلو شرط ساقط کړې شو.نو هم ددې مقصد په لحاظ د عدد شرط هم ساقط کړې شوې دې.ځکه چې ښځې اړخ ته د یوې ښځې په کتلوکې تخفیف دې.په نسبت د دوې (دوه) یا څلورو ښځو د کتلو.یعنی ښځې اړخ ته د یوې ښځې کتل خفیف دی.اود یوځو ( د یو نه د زیاتو) ښځو کتل غلیظ دی.

> إِلَّا أَنَّ الْمَثْنَى وَالثَّلَاثَ أَحْوَطُ لِمَا فِيهِ مِنْ مَعْنَى الْإِلْزَامِ خودا چې دوې (دوه) او درې وی.نو زیات احتیاط دې.ځکه چې په دې کې د لازمولو معنی موجود ده.

**حل اللغة:** ① المثنی-دوه-② الثلاث-درې-③ الزام-لازمول-④ احوط-زیات احتیاط

**تشریح:** - علامه مرغینانی ﷫ فرمائی چه په ولادت وغیره کې د یوې ښځې ګواهی اګرچه کافی ده.خوکه دوې (دوه) یا درې ښځې وی.نو په دې کې زیات احتیاط دې.ځکه چې د ولادت وغیره په سلسله کې د یوې ښځې ګواهی ورکولوکې هم د لازمولو معنی موجود ده.هم دا وجه ده.چه د ګواهی ورکونکې ښځې آزاد او مسلمانه کیدل، او په لفظ د شهادت سره ګواهی ورکول شرط دی.اودا ګواهی د قاضی مجلس سره خاص ده.

> ثُمَّ حُكْمُهَا فِي الْوِلَادَةِ شَرَحْنَاهُ فِي الطَّلَاقِ نو په ولادت کې د یوې ښځې د شهادت حکم موږ په ،،کتاب الطلاق،،کې په شرح او تفصیل سره ذکرکړې دې.

**تشریح:** - علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.چه د ولادت په سلسله کې د یوې ښځې د شهادت حکم په،،باب ثبوت النسب،، کې په تفصیل سره تیر شوې دې.په شرح هدایه کې ئې اوګورئ.



> وَأَمَّا حُكْمُ الْبَكَارَةِ فَإِنْ شَهِدْنَ أَنَّهَا بِكْرٌ يُؤَجَّلُ فِي الْعِنِّينِ سَنَةً وَيُفَرَّقُ بَعْدَهَا پاتې شو د بکارت حکم،نو که ښځو ګواهی ورکړله.چه دا ښځه باکره ده.نو ( ددې) عنین ( نامرد) میړه ته به یو کال مهلت ورکولې شی. اود هغې نه روسته به تفریق کولې شی. لِأَنَّهَا تَأَيَّدَتْ بِمُؤَيِّدٍ إِذِ الْبَكَارَةُ أَصْلٌ ځکه چې ګواهئ ته یو تائید ملاؤ شو.ځکه چې باکره کیدل اصل دی.

**حل اللغة:** ① یؤجل-نیټه ورکولې شی-② العنین-نامرده-③ تایدت-تائید ئې شوې-④ یفرق-جدا والې به کولې شی

**تشریح:** - او پاتې شو بکارت،نو ددې تفصیل دادې.که د یو عنین ( نامرد) او دده د ښځې په منځ کې اختلاف وی.او عنین ( نامرد) سړی اووئیل.چه ما ددې سره جماع کړې ده.او ښځې ددې انکار اوکړو.او یوې ښځې یا یوڅو ښځو ددې د باکره کیدلو شهادت ورکړو.نو ددې میړه ته به یو کال مهلت ورکولې شی.نود یو کال په تیریدلو باندې هم که میړه د جماع کاوه دعوه اوکړله.او ښځې انکار اوکړو.نو قاضی به ښځو ته حکم ورکړی.چه هغوی دا ښځه اوګوری.چه باکره ده اوکه ثیبه ده.که ښځو اووئیل.چه هغه اوس هم باکره ده.نو هغې ته به اختیار وی.که غواړی نکاح دې پاته اوساتی.یا دې تفریق ( د جدائی مطالبه) اوکړی.که هغې تفریق اختیار کړو.نو قاضی به ددوی دواړو په منځ کې تفریق اوکړی.ځکه چې د ښځو ګواهئ ته یو تائید حاصل شو.یعنی باکره کیدل،ځکه چې باکره کیدل اصل دی.نود ښځو ګواهی په اصل سره مؤید شوه.

> وَكَذَا فِي رَدِّ الْمَبِيعَةِ إِذَا اشْتَرَاهَا بِشَرْطِ الْبَكَارَةِ، هم دغه ډول د مبیعه وینځې واپس کاوه حکم دې.کله چې مشتری دا د باکره کیدلو په شرط باندې اخستې وی. فَإِنْ قُلْنَ إِنَّهَا ثَيِّبٌ يَحْلِفُ الْبَائِعُ لِيَنْضَمَّ نُكُولُهُ إِلَى قَوْلِهِنَّ نو که ښځو اووئیل.چه هغه ثیبه ده.نود بائع څخه به قسم اخستې شی.چه د بائع د قسم نه انکار کول د ښځو قول سره منضم ( یوځائې) شی.

**حل اللغة:** ① المبیعة-کوم شئ چې خرڅولې شی-② ثیب-هغه ښځه چې وطی شوې وی-③ ینضم-یوځائې کولې شی

**تشریح:** - دغه ډول که یوکس د باکره کیدلو په شرط باندې یوه وینځه واخستله.بیا په وینځه باندې د قبضه کاوه نه وړاندې یاد قبضه کاوه نه روسته په بائع او مشتری کې اختلاف شو.یعنی مشتری اووئیل.چه مبیعه وینځه ثیبه ده.او بائع اووئیل.چه باکره ده.نو مبیعه وینځه به ښځو ته خودلې شی.نوکه ښځو اووئیل.چه دا وینځه باکره ده.نو بیع به لازم وی.او مشتری ته به د خیارعیب لاندې مبیعه وینځه د واپس کاوه اختیار نه وی.ځکه چې د ښځو شهادت ته یو تائید هم ملاؤ شوې دې.او هغه تائید دادې.چه باکره کیدل اصل دی.او ښځو هم د باکره کیدلو شهادت ورکړې دې.نو چونکه د ښځو شهادت اصل سره مؤید شوې دې.ځکه به د ښځو دا شهادت معتبر وی.اوکه ښځو مبیعه وینځه اوکتله.او وې وئیل.چه دا ثیبه ده.نو مشتری لپاره به د بیع فسخ کاوه حق ثابت نه وی.ځکه چې د بیع فسخ کاوه حق قوی دې.اود ښځو شهادت ضعیف دې.اود ښځو شهادت ته کوم مؤید هم نه دې حاصل شوې.د پاته ښځو د شهادت په وجه به مشتری ته د خصومت حق حاصل وی.یعنی د ښځو د شهادت په وجه به دده د دعوې سماعت کولې شی.او ددې اثر به دا وی.چه د بائع څخه به قسم اخستلې شی.که مشتری په وینځه باندې قبضه کړې ده.نو بائع به په دې الفاظو سره قسم خوری،، په خدائې قسم ما د بیع د حکم په وجه دا وینځه د باکره کیدلو په حالت کې مشتری ته سپارلې ده،،اوکه مشتری قبضه نه وی کړې.نو په دې الفاظو سره به قسم اخستلې شی،،په خدائې قسم ما دا وینځه د باکره کیدلو په حالت کې خرڅه کړې ده،،نوکه بائع قسم اوخوړلو.نو عقدبیع به لازم وی.او مشتری ته به د خیارعیب لاندې د مبیعه وینځې واپس کاوه اختیار نه وی.اوکه بائع د قسم نه انکار اوکړو.نو بیا به مشتری ته د مبیعه وینځې واپس کاوه اختیار وی.

**وَالْعَيْبُ يَثْبُتُ بِقَوْلِهِنَّ** او عيب خو به د ښځو په قول سره ثابت شي. **فَيَحْلِفُ الْبَائِعُ** نو د بائع څخه به قسم اخستې شي.

**تشريح:-** داعبارت د يو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه وړاندې تير شو. چې په کومو عيوبو باندې سړي نشي خبريدلې.په هغې کې د ښځو شهادت کافي دې.نو د ښځو ددې شهادت ور کاوه په وجه چې مبيعه وينځه ثيبه ده.مشترى ته د واپس کاوه اختيار کيدل پکار وو.حالانکه تاسو د بائع نه قسم اخستل ضروري ګرځولی دی.نود بائع نه قسم اخستل ضروري ګرځول په حديث «شهادة النساء جائزة» باندې عمل ترك كول دی.

ځواب ددې ځواب دادې.چه هركله ښځو دا اووئيل.چه مبيعه وينځه ثيبه ده.نود مبيعه وينځې في الحال ثيبه کيدل اومونده شو.نوهركله چې د مبيعه وينځې د ښځو په شهادت سره ثيبه کيدل ثابت شو.نو په حديث باندې عمل اوشو.بيا به ددې نه روسته د بائع نه قسم اخستلې شي.چه دا وينځه کوم وخت ما سره وه.نو په دې کې دا عيب نه وو.يعني هغه وخت دا ثيبه نه وه.اود بائع نه ددې قسم اړتيا ځکه راپيښ شو.چه مشترى ته دهغه عيب په وجه د مبيع واپس کاوه اختيار وی.کوم عيب چې بائع سره پيدا شوې وی.اوکوم عيب چې بائع سره نه وی.بلکه روسته پيدا شوې وی.د هغې په وجه مشترى ته د مبيع واپس کاوه اختيار نه وی.ددې ځواب نه روسته به هيڅ اعتراض نه وی.

**وَأَمَّا شَهَادَتُهُنَّ عَلَى اسْتِهْلَالِ الصَّبِيِّ لَا تُقْبَلُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي حَقِّ الْإِرْثِ** اود ولادت په وخت د بچی په ژړا باندې د ښځو ګواهی دميراث په حق کې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز قبول نه ده.

**حل اللغة:** ① **استهلال**-د ماشوم ژړا-② **الصبى**-ماشوم-③ **يطلع**-چه خبريدې شی-④ **الرجال**-جمع د رجل ،سړي

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.که ښځو د يو بچی د ولادت په وخت دده د ژړا شهادت ورکړو.يعني دا ئې اووئيل.چه فلانی بچی د پيداکيدلو په وخت ژړلی وو.يعني ژوندې پيدا شوې وو.بيا مړشو.نود جنازې د لمونځ په حق کې به بالاتفاق د ښځو ګواهی قبول وی.يعني د ښځو په ګواهئ سره به د جنازې د لمونځ په حق کې د بچی ژوندی پيدا کيدل او مړکيدل ثابت شی.او بالاتفاق به ددې بچی د جنازې لمونځ ادا کولې شی.ځکه چې لمونځ د جنازې د امور دين څخه دې.او په امور دين کې د يوې ښځې شهادت هم حجت وی.لکه څنګه چې د رمضان په مياشت (سپوږمئ په کتلو) کې د ښځې شهادت حجت دې.خود ميراث په حق کې د ښځو شهادت د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز غيرمعتبر دې.

**لِأَنَّهُ مِمَّا يَطَّلِعُ عَلَيْهِ الرِّجَالُ** دليل دا دې چې د بچی ژړا داسې شئ دې.چه په دې باندې سړی خبريدلی شی. **إِلَّا فِي حَقِّ الصَّلَاةِ لِأَنَّهَا مِنْ أُمُورِ الدِّينِ** خود لمونځ په حق کې (به قبلولې شی).ځکه چې لمونځ د امور دين څخه دې.

**تشريح:-** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د ولادت په وخت د بچی ژړل داسې شئ دې.چه په دې باندې سړی خبريدلې شی.او په کومو څيزونو چې سړی خبريدلی شی.په هغې کې د ښځو ګواهی حجت نه وی.نود ولادت په وخت د بچی په ژړا به هم د ښځو ګواهی معتبر نه وی.په خلاف د نفس ولادت،ځکه چې ولادت نوم دې.د مور نه د بچی د جداکيدلو،اود مور نه د بچی په جداکيدلو باندې د سړو خبريدل ناممکن دی.په دې وجه په نفس ولادت باندې د ښځو ګواهی مقبول ده.

**وَعِنْدَهُمَا تُقْبَلُ فِي حَقِّ الْإِرْثِ أَيْضًا**[1] اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د ميراث په حق کې به قبليږي. **لِأَنَّهُ صَوْتٌ عِنْدَ الْوِلَادَةِ** ځکه چې استهلال د ولادت په وخت آواز دې.

**حل اللغة:** ① **الارث**-ميراث-② **صوت**-اواز کوی-③ **الولادة**-پيدائش-④ **عادة**-عام طور

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى الدرالمختار (٤١٣\٤) وفتح القدير (٤٥٥\٦) والهندية (٤٥١\٣) ومجمع (٢٦١\٣) نقلاً عن القول الراجح (١٢٨\٢)-



**تشريح:-** اوپه زير بحث مسئله کې د صاحبينو رحمهما الله که يوکس خپله ښځه حامله پريږدی.او مړشی.بيا ددې بچی پيدا شو.او يوې ښځې يا يوځو ښځو ګواهی ورکړله.چه دې بچی د ولادت په وخت ژړلی وو.يعني ژوندې پيدا شوې او مړشوې دې.نو دې بچی ته د مرحوم پلار ميراث ملاويدل پکار دی.نو حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي.چه ددې بچی د ميراث مستحق کيدلو په حق کې د ولادت په وخت په ژړا باندې به د ښځو ګواهی معتبر نه وی.بلکه د دوې (دوه) سړي ياد يو سړې اود دوې (دوه) ښځو ګواهی به قبلولې شی.هم دا يو قول د امام شافعي رحمه الله دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز دميراث په حق کې به هم د ښځو ګواهی قبلولې شی.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.اوهم دا يو قول د امام شافعي رحمه الله دې.

د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه بچې د ولادت په وخت ژاړی.او دغه وخت په عامه توګه (عام طور) باندې سړی موجود نه وی.نود ولادت په وخت په ژړا باندې د ښځو ګواهی ورکول داسې دی.لکه په نفس ولادت باندې ګواهی ورکول.او په نفس ولادت باندې د ښځو ګواهی ورکول معتبر ده.نود ولات په وخت د بچی په ژړا باندې به هم د ښځو ګواهی معتبر وی.

**وَلَا يَحْضُرُهَا الرِّجَالُ عَادَةً** او په عامه توګه (عام طور) باندې سړی هغه سره موجود نه وی. **فَصَارَ كَشَهَادَتِهِنَّ عَلَى نَفْسِ الْوِلَادَةِ** نو داسې شوه.لکه د ښځو شهادت په نفس ولادت باندې.

**تشريح:-** د امام صاحب رحمه الله د اړخه د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب دادې.چه په شهادت کې فقط امکان اطلاع معتبر ده.يعني صرف ددې اعتبار دې.چه دسړو خبريدل ممکن وی.او په دې کې هيڅ شبه نشته.چې د ولادت په وخت د بچی د ژړا آواز د سړو لپاره اوريدل ممکن دی.نو هرکله چې د ولادت په وخت د بچی آواز اوريدل، د سړو لپاره ممکن دې.نو په دې کې به د ښځو شهادت معتبر نه وی.او پاتې شو نفس ولادت،نو داچونکه د بچی د خپلې مور نه د جداکيدلو نوم دې.او په دې عمل کې سړی د ښځو سره نه شريکيږي.په دې وجه په نفس ولادت باندې د سړو خبريدل ناممکن دی.اوهر کله چې په نفس ولادت باندې د سړو خبريدل ناممکن دی.نو په نفس ولادت باندې به د ښځو ګواهی معتبر وی.

### په ګواهئ کښې د عدالت اود لفظ شهادت حيثيت

قَالَ **وَلَا بُدَّ فِي ذَلِكَ كُلِّهِ مِنَ الْعَدَالَةِ وَلَفْظَةِ الشَّهَادَةِ** اود شهادت په ټولو صورتونو کې عدالت او لفظ شهادت ضروري دې. **فَإِنْ لَمْ يَذْكُرِ الشَّاهِدُ لَفْظَةَ الشَّهَادَةِ وَقَالَ أَعْلَمُ أَوْ أَتَيَقَّنُ لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُ** نوکه شاهد لفظ د شهادت ذکر نکړو.او وې وئيل.چه زه خبر يم.يا زه يقين کوم.نو دده شهادت به نه قبليږي.

**تشريح:-** په شهادت کې عدل دادې.چه انسان د کبائرو (غټو ګناهونو) نه ځان ساتي.په صغائرو (وړو ګناهونو) باندې مصر نه وی.دده صلاح دده د فساد نه زياته وی.او دده صواب (صائب الرائي کيدل) دده د خطاء نه زيات وی.بهرحال ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه د شهادت په ټولو انواعو کې د ګواهانو عادل کيدل شرط دی.او لفظ د شهادت شرط دې.يعني ګواه به د شهادت په وخت دا وائي.چه،،زه شهادت ورکوم، يا زه ګواهی ورکوم،، تردې که د ګواهئ په وخت ګواه اووئيل.چه ماته علم دې.يا زه يقين کوم.نو په دې مقدمه کې به دغه وخت دده ګواهی نه قبليږي.

**أَمَّا الْعَدَالَةُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ}** عدالت خو ځکه چې الله تعالى فرمائيلی دی.او کوم ګواهان چې تاسو خوښوئ. **وَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ}** او خوښ ګواه عادل وی. **وَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ}** او ځکه چې د الله تعالى ارشاد دې.چه پخپلو کې عادل ګواه مقرر کړئ.

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د ګواه عادل کيدل خو ځکه شرط دی.چه① الله تعالى فرمائيلی دی ﴿مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ يعني،، دوې (دوه) ګواهان کړئ د هغه خلګو نه چې تاسو ئې خوښوئ په ګواهانو کې ،، حاصل داچه ګواه په خلګو کې خوښ سړې وی.اودا ښکاره ده.چه فاسق په خلګو کې خوښ نه شمارلې کيږي.نو ددې آيت

نه معلومه شوه.چه شاهد فاسق سړي نه وي.بلکه دده عادل کیدل ضروري دي.② دوهم آیت دادې ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ﴾ یعنی تاسو په مسلمانانو کي دوې (دوه) عادل سړي ګواه مقرر کړئ.ددې آیت نه هم معلومه شوه.چه د ګواه عادل کیدل ضروري دي.

وَلِأَنَّ الْعَدَالَةَ هِيَ الْمُعِينَةُ لِلصِّدْقِ، او ځکه چې عدالت صدق معین کونکې دې. لِأَنَّ مَنْ يَتَعَاطَى غَيْرَ الْكَذِبِ قَدْ يَتَعَاطَاهُ ځکه چې کوم کس د دروغو نه علاوه د نورو ممنوعاتو مرتکب (کونکې) وي.هغه کله د دروغو هم مرتکب کیږي.

حل اللغة: ① المعينة-تائید کونکې -② يتعاطا-ارتکاب کوي-③ الكذب-دورغ-④ الصدق-رښتیا

تشریح:- عقلي دلیل دادې.چه شهادت د ګواه د صادق او رشتوني کیدلو په وجه حجت وي.اود صدق او رشتیا معین کونکې هم دا عدالت دې.یعنی عادل سړې رشتیا وائي.ځکه فاسق کوم چې د ممنوعاتو د دین مرتکب وي.هغه کله د دروغو هم مرتکب کیږي.ځکه کله چې د ګناهونو نه د هغه پرهیز نشته.نود دروغو څخه به هم خوف او یره نه وي.نود کذب د تهمت په وجه به د فاسق ګواهي ردکولې شي.اوهر کله چې د کذب د تهمت په وجه د فاسق ګواهي ردکیږي.نود ګواه عادل کیدل به شرط او ضروري وي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ الْفَاسِقَ إِذَا كَانَ وَجِيهًا فِي النَّاسِ ذَا مُرُوءَةٍ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ اود ابویوسف رحمه الله نه نقل دي.که فاسق سړې په خلګو کي وجیه (غوره) وي.او عزت او مرتبې والا وي.نو دده ګواهي قبلولې شي. لِأَنَّهُ لَا يُسْتَأْجَرُ لِوَجَاهَتِهِ ځکه چې دې د خپل عزت او مرتبې په وجه په اجاره باندې نشي اخستلې کیدلې. وَيَمْتَنِعُ عَنِ الْكَذِبِ لِمُرُوءَتِهِ اود خپلو اخلاقو په وجه به د دروغو نه ځان ساتي. وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او رومبې قول صحیح دې.

حل اللغة: ① وجيه-مخوریز-② الناس-خلق-③ مروؤة-صاحب د مروت-④ يستاجر-اخلی

تشریح:- د حضرت امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دي.که فاسق سړې په خلګ وکي خپل وجاهت او لوې قدر او عزت لري.اود عزت او د انسانیت د ښه اخلاقو نمونه وي.نود فاسق کیدلو باوجود به دده ګواهي قبلولې شي.ځکه چې هغه د خپلې مرتبې او قدر ومنزلت په لحاظ د دروغو ګواهۍ لپاره نه خرڅیږي.یعنی هغه به د خپلې مرتبې او عزت په وجه داسې نه کوي.چه د مدعي نه روپۍ واخلي.اود دروغو ګواهي ورکړي.اود خپلو اخلاقو او انسانیت په وجه به د دروغ وئیلو نه ځان ساتي.یعنی هغه به دا نه خوښوي.چه په خلګ وکي دروغجن او کاذب مشهور شي.نود هغه ښه اخلاق به هغه د دروغ وئیلو نه منع کوي.نو هر کله چې د فاسق وجاهت اود هغه قدر اوعزت، هغه د دروغ وئیلو اود دروغو ګواهۍ ور کاوه نه منع کوي.نو هغه به متهم بالکذب هم نه وي.او هر کله چې متهم بالکذب نه دې.نو دده په شهادت قبلولو کي څه باك دې.

علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.صحیح هم دادې.چه مطلقاً د فاسق ګواهي قبول نه وي.که هغه د وجاهت او مرتبې والا وي.اوکه د وجاهت او مرتبې والا نه وي.ځکه چې د الله تعالی قول ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ﴾ نه علی الاطلاق معلومیږي.چه د غیرعادل یعنی د فاسق ګواهي نشي قبلولې.که دا فاسق په خلګو کي قدرمند وي.اوکه عزت مند نه وي.اود الله تعالی قول ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا﴾ نه هم ثابتیږي.چه د فاسق هیڅ یوه خبره به بلا تحقیقه نه قبلیږي.دویمه وجه دادې.چه د شهادت قبلول او په دې باندې عمل کول په حقیقت کي د شاهد اکرام او اعزاز کول دي.

إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ لَوْ قَضَى بِشَهَادَةِ الْفَاسِقِ يَصِحُّ عِنْدَنَا. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَصِحُّ، خو که قاضي د یو فاسق په ګواهۍ باندې حکم ورکړو نو زموږ په نیز صحیح دې. وَالْمَسْأَلَةُ مَعْرُوفَةٌ اودا مسئله مشهور ده.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه اصح قول اګرچې هم دادې.چه د فاسق ګواهي قبول نکړې شي.خو ددې باوجود که قاضي د فاسق په ګواهۍ باندې فیصله ورکړله.نو زموږ په نیز به دا فیصله معتبر او قابل تنفیذ وي.اود امام شافعي رحمه الله په نیز به نه د فاسق ګواهي قبلولې شي.اونه د فاسق په ګواهۍ باندې د قاضي فیصله جائز ده.که قاضي د فاسق په ګواهۍ باندې فیصله ورکړله.نو هغه به نه نافذ کیږي.دا مسئله مشهور ده.د،،کتاب



القاضي الی القاضي،، په بیل کي.په دې باندې تفصیلي کلام شوې دې.

وَأَمَّا لَفْظَةُ الشَّهَادَةِ فَلِأَنَّ النُّصُوصَ نَطَقَتْ بِاشْتِرَاطِهَا پاتې شو لفظ د شهادت.نو ځکه چې نصوص هم ددې لفظ په شرطیت باندې ناطق (وارد) دي. إِذِ الْأَمْرُ فِيهَا بِهَذِهِ اللَّفْظَةِ ځکه چې په نصوصو کي په دې لفظ سره امر دې.

حل اللغة: ① نطقت-ګویا دي-② اشتراط-شرط کولو-③ توکيد-تاکید-④ اشد-زیات سخت

تشریح:- او لفظ د شهادت یعنی د شاهد په لفظ د،،اشهد،، باندې ګواهي ورکول، ځکه شرط دې.چه نصوص (یعنی قرآن او حدیث) هم په دې لفظ د شهادت سره وارد دي.لکه د الله تعالی ارشاد دې.① ﴿فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ﴾

اود نبي کریم ﷺ ارشاد دې. ﴿اذا علمت مثل الشمس فاشهدوا الافدع﴾ یعنی که تاته د یوې خبرې علم د لمر ښشان واضح (اوښکاره) طور باندې اوشي.نو ګواهي ورکړه.ګني دا پریږده.نو هرکله چې د ګواهۍ په سلسله کي نصوص د قرآن او نص د حدیث په لفظ د شهادت سره صراحة ناطق دي.نود ګواهۍ په باب کي د لفظ شهادت په ځاني به بل هیڅ لفظ استعمالول صحیح نه وي.

وَلِأَنَّ فِيهَا زِيَادَةَ تَوْكِيدٍ، او ځکه چې په لفظ د شهادت کي زیات مضبوط والې دې. فَإِنَّ قَوْلَهُ أَشْهَدُ مِنْ أَلْفَاظِ الْيَمِينِ كَقَوْلِهِ أَشْهَدُ بِاللَّهِ فَكَانَ الِامْتِنَاعُ عَنِ الْكَذِبِ بِهَذِهِ اللَّفْظَةِ أَشَدَّ ځکه چې لفظ د،،اشهد،، د یمین [illegible] نو ددې لفظ په وجه د دروغو نه ځان ژغورل زیات سخت دي.

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه لفظ د شهادت چونکه په مشاهده باندې دلالت کوي.په دې وجه د شهادت په لفظ کي تاکید او مضبوطي زیاته ده.او لفظ د،،اشهد،، چونکه د یمین او قسم د الفاظو ځني دې.ځکه به ددې لفظ شهادت په وجه شاهد د دروغ وئیلو نه زیات ځان ساتي.او په شهادت کي هم دا مقصود دې.چه شاهد د دروغ وئیلو نه پرهیز اوکړي.نو په لفظ د شهادت کي چونکه تاکید او مضبوطي ده.اود دروغ وئیلو نه بچکیدل زیات سخت دي.په دې وجه په ګواهۍ کي په لفظ د شهادت سره ګواهي ورکول ضروري او ګرځولې شو.

وَقَوْلُهُ فِي ذَلِكَ كُلِّهِ إِشَارَةٌ إِلَى جَمِيعِ مَا تَقَدَّمَ اود مصنف رحمه الله قول (في ذالك كله) کي د شهادت ټولو انواعو اړخ ته اشاره ده. حَتَّى يُشْتَرَطَ الْعَدَالَةُ، وَلَفْظَةُ الشَّهَادَةِ فِي شَهَادَةِ النِّسَاءِ فِي الْوِلَادَةِ وَغَيْرِهَا هُوَ الصَّحِيحُ تردې چې ولادت او ددې نه په علاوه کي هم د ښځو په ګواهۍ کي لفظ د شهادت او عادل کیدل شرط دي.هم دا صحیح دي.

حل اللغة: ① النساء-زنانه\ښځې-② اختص-خاص شوې دې-③ الحرية-ازاد،ضد د غلامی-④ الالزام-لازمول

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د ماتن قول ﴿ولابد في ذالك كله﴾ سره دې خبرې اړخ ته اشاره ده.چه د شهادت په ټولو انواعو کي د شاهد عادل کیدل،او په لفظ د،،اشهد،، سره ګواهي ورکول شرط دي.تردې چې په ولادت وغیره کي د ښځو ګواه جوړولو لپاره هم ددوی عادل کیدل،او په لفظ د شهادت سره ګواهي ورکول ضروري دي.او هم دا صحیح قول دې.

لِأَنَّهَا شَهَادَةٌ لِمَا فِيهِ مِنْ مَعْنَى الْإِلْزَامِ دلیل دا دې چې دا هم شهادت دې.ځکه چې په دې کي د لازمولو معنی ده. حَتَّى اخْتَصَّ بِمَجْلِسِ الْقَضَاءِ تردې چې د قاضي مجلس سره خاص ده. وَلِهَذَا يُشْتَرَطُ فِيهِ الْحُرِّيَّةُ وَالْإِسْلَامُ او په دې کي آزادي او مسلمان کیدل شرط دي.

تشریح:- دلیل دا دې وړاندې تیرشوی دي.چه په دې کي هم د الزام معنی موجود ده.او هرکله چې د الزام معنی موجود ده.نود ولادت وغیره په سلسله کي د ښځو خبر ورکول به صرف خبر ورکول نه وي.بلکه شهادت به وي.هم دا وجه ده.چه د ولادت وغیره شهادت د قضاء مجلس سره خاص دې.اود شهادت ورکونکې ښځې عاقل، بالغ، آزاد او مسلمان کیدل شرط دي.اود قاضي مجلس،آزادي او اسلام دا واړه شیان چونکه د شهادت لپاره شرط دي.په دې وجه په ولادت وغیره کي د ښځو په لفظ د شهادت سره ګواهي ورکول ضروري ده.البته د عراق فقهاء په

ولادت وغیره کې د ګواهۍ لپاره لفظ د شهادت شرط نه ګرځوی.

## د ګواهانو لپاره د عدالت معیار

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يَقْتَصِرُ الْحَاكِمُ عَلٰى ظَاهِرِ الْعَدَالَةِ فِي الْمُسْلِمِ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي. چه د مسلمان په حق کې به حاکم په ظاهري عدالت باندې اکتفاء کوي. وَلَا يَسْأَلُ عَنْ حَالِ الشُّهُودِ حَتّٰى يَطْعَنَ الْخَصْمُ اود ګواهانو د حالت پوښتنه به نه کوي. تردې چې مدعی علیه نقطه چیني (او طعن) اوکړي.

حل اللغة: ① يقتصر - کفایت به کوي - ② يطعن - چه طعن پرې اوکړي - ③ يسال - پوښتنه کوي - ④ الخصم - جګړه کونکي

تشریح: - په دې خبره د ټولو امامانو اتفاق دې. چه د ګواهانو عادل کیدل ضروري دي. خو ددې اتفاق نه روسته حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي. چه کله مدعي د قاضي په عدالت کې ګواه پیش کړي. او مدعی علیه په ګواهانو باندې څه طعن اونکړي. یعني دا اونه وائي. چه د مدعي ګواه دروغجن دی، یا غلامان دي، یا محدود فی القذف دي. یعني په ګواهانو کې څه داسې نقص بیان نکړي. چه د هغې په وجه د هغوی شهادت مردود شي. نو قاضي به مسلمانانو ګواهانو کې ددوی په ظاهري عدالت باندې اکتفاء اوکړي. یعني دوی به عادل اوګرځوي. ددوی د عدالت او دیانت په اړه کې به تفتیش (او معلومات) نه کوي.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {اَلْمُسْلِمُوْنَ عُدُوْلٌ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ، إِلَّا مَحْدُوْدًا فِيْ قَذْفٍ} ([1]) دلیل دا دې رسول الله ﷺ فرمائیلي دي. چه مسلمانان عادلان دي. بعض په بعض باندې حجت دي. خو محدود فی القذف.

تشریح: - ① دلیل دا حدیث دې. «قال رسول الله ﷺ المسلمون عدول بعضهم على بعض إلا محدوداً في قذف» (ابن ابي شیبه) یعني تمام مسلمانان عادل دي. د یو بل په خلاف حجت دي. سوا د محدود فی القذف نه. یعني د محدود فی القذف ګواهي د هیڅ مسلمان خلاف حجت نشي کیدې.

وَمِثْلُ ذٰلِكَ مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه او هم ددې پشان د حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دي.

تشریح: - دغه ډول حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه په نوم یو خط اولیکلو. نو په هغې کې هم «المسلمون عدول بعضهم على بعض إلا محدوداً في قذف» عبارت موجود دې. ددې حدیث نه معلومه شوه. چه مطلقاً د مسلمان ګواهي حجت دې. دده د عدالت په اړه کې د تحقیق او تفتیش هیڅ اړتیا نشته.

وَلِأَنَّ الظَّاهِرَ هُوَ الْاِنْزِجَارُ عَمَّا هُوَ مُحَرَّمٌ دِيْنُهُ، او ځکه چې د مسلمان ښکاره حال د هغه شي نه بچ کیدل دي. کوم چې دده په دین کې حرام دي. وَبِالظَّاهِرِ كِفَايَةٌ إِذْ لَا وُصُوْلَ إِلَى الْقَطْعِ او هم په ظاهر باندې کفایت دې. ځکه چې یقین پورې نشي رسیدلی.

حل اللغة: ① الانزجار - منع کول - ② محرم - حرام شوې - ③ كفاية - کفایت\بسوالې - ④ القطع - یقین

تشریح: - عقلي دلیل دادې. چه د مسلمان ښکاره حال دادې. چه هغه د هریو داسې فعل نه کوم چې دده په دین کې حرام دې مثلاً د دروغ ویلو څخه به پرهیز کوي. او هم په دې ظاره حال به اکتفاء کولې شي. ځکه چې قطعي او یقیني طور باندې دګواهانو عادل کیدل نشي معلومیدلې. نوکه قاضي د مزکي یعني د تعدیل کونکي نه د ګواهانو د حال معلومات اوکړو. او هغه ګواه عادل اوخودل. نو بیا هم دده د عادل کیدلو قطعي یقین نشي کیدلې. سوا ددې نه چې دا اوویلی شي. چه تعدیل کونکې مزکي به په ښکاره دروغ نه وائي. نو لکه څنګه چې د تعدیل کونکي په اړه کې دا ګمان اوکړې شو چه هغه به دروغ نه وائي. دغه ډول پخپله د ګواه په نسبت دا ګمان کیداې شي. چه دا مسلمان به دروغ نه وائي. نوپه دې ظاهري عدالت باندې اکتفاء کول کافي دي.

---

([1]) من حديث عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده رضي الله عنه أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه في البيوع (نصب: ١٦٧\٤)_



❶ سوال: دلته کې یو سوال دې. هغه داچه ،،ظاهر،، د حق دفع کاوه لپاره کافي کیږي. د ،،ظاهر،، په ذریعه کوم حق ثابتیږي نه. حالانکه امام ابوحنیفه رحمه الله اوفرمائیل. چه د ګواهانو په ظاهري عدالت سره د مدعي لپاره د مدعی به استحقاق ثابتیږي.

خواب: ددې یو خواب دادې. چه ،،ظاهر،، استحقاق ثابتوي. او هغه ظاهر په کوم سره چې استحقاق نه ثابتیږي. د هغې نه مراد استصحاب دې. د استحقاق نه ثابتیدل، دې خبرې ته مستلزم نه دې. چه مطلقاً په ظاهر سره هم استحقاق ثابت نه وي. ② دوهم خواب دا هم دې. که یو شي د ظاهر معارض نه وي. نو د ،،ظاهر،، لپاره هم کافي کیږي. او دلته کې هم دغه ډول ده. ځکه چې زموږ کلام په هغه صورت کې دې. کله چې مدعی علیه د ګواهانو په اړه کې طعن نه وی کړې. اود مدعی علیه د طعن نه کاوه په وجه هیڅ یو شي په ګواهانو کې د ظاهري عدالت معارض نه دې. نو هرکله چې د ظاهري عدالت هیڅ شي معارض نه دې. نود ګواهانو په ظاهري عدالت سره به د مدعي حق هم ثابتیږي.

إِلَّا فِي الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ فَإِنَّهُ يَسْأَلُ عَنِ الشُّهُوْدِ خو په حدودو او قصاص کې. چه (په دې کې به) د ګواهانو حال به معلوموي.

تشریح: - ابو الحسین قدوري رحمه الله فرمائي. که په حدودو او قصاص کې مسلمان ګواه ګواهي ورکړي. نو قاضي به ددوی په ظاهري عدالت اکتفاء نه کوي. که مدعی علیه طعن اوکړي. یا طعن اونکړي. بلکه ددوی عدالت دې معلوم کړي. یعني د دیانت او امانت په سلسله کې دې ددوی حال معلوم کړي.

لِأَنَّهُ يَحْتَالُ لِإِسْقَاطِهَا دلیل دا دې چې قاضي ددې د ساقطولو حیله لټون کوي. فَيُشْتَرَطُ الْاِسْتِقْصَاءُ فِيْهَا نود عدالت په سلسله کې په پوره طریقه تفتیش (او معلومات) کول شرط دي. وَلِأَنَّ الشُّبْهَةَ فِيْهَا دَارِئَةٌ او ځکه چې په حدودو کې شبه حد لرې کونکې دې.

حل اللغة: ① يحتال - حیله به جوړولې شي - ② اسقاط - ساقطول - ③ الاستقصاء - پوره تفتیش - ④ دارئة - لرې کونکې

تشریح: - دلیل دادې. چه قاضي چونکه د حدودو اوقصاص ساقطولو بهانه لټون کولوکې د شریعت د اړخه مکلف دې. ځکه به د ګواهانو د عدالت په سلسله کې په پوره طور باندې تفتیش او تحقیق کول شرط وي. چه یوه داسې خبره ښکاره شي. چه په هغې سره حد ساقط شي. ② دوهم دلیل دادې. چه د ګواهانو په ظاهري عدالت باندې د اکتفاء کاوه په صورت کې ددوی د غیرعادل کیدلو شبه پاتې کیږي. او په حدودو کې شبه پیدا کیدل حدود ساقطوي. نود حدودو ثابتولو لپاره به د ګواهانو په ظاهري عدالت باندې اکتفاء کول صحیح نه وي. بلکه د ګواهانو دحال معلومات کول به ضروري وي.

وَإِنْ طَعَنَ الْخَصْمُ فِيْهِمْ سَأَلَ عَنْهُمْ اوکه مدعی علیه په ګواهانو کې طعن اوکړو. نو په پټه اوپه ښکاره به د دغه ګواهانو په اړه کې معلومات کوي. لِأَنَّهُ تَقَابَلَ الظَّاهِرَانِ فَيَسْأَلُ طَلَبًا لِلتَّرْجِيْحِ ځکه چې دوې (دوه) ظاهر مقابل شو. نود ترجیح ورکاوه لپاره به د ګواهانو د حال پوښتنه کوي.

حل اللغة: ① طعن - عیب اولګولو - ② السر - پټ - ③ العلانية - ښکاره - ④ تقابل - مقابله کوي

تشریح: - او که د حدودو او قصاص نه علاوه د نورو معاملاتو په ګواهانو کې مدعی علیه طعن (او ملامته) اوکړه. یعني څه داسې نقص ئې بیان کړو. چه په هغې سره د ګواهانو ګواهي مردود کیږي. نو په داسې صورت کې به قاضي خفیه او علانیه (په پټه او په ښکاره) دواړه شان د ګواهانو د عدالت معلومات کوي. ځکه چې دلته کې دوې (دوه) ظاهر معارض او مقابل شوي دي. یو ظاهر خو دادې. چه دا ګواهان به دروغجن نه وي. او دوهم ظاهر دادې. چه مدعی علیه به پخپل طعن کې دروغجن نه وي. یعني د مسلمان کیدلو په وجه د ګواهانو ظاهر ددې خبرې تقاضا کوي. چه ګواه پخپله ګواهۍ کې دروغجن نه وي. او ددوی په ګواهۍ باندې د مدعي په حق کې فیصله اوکړې شي. اود مدعی علیه ظاهر ددې خبرې تقاضا کوي. چه مدعی علیه پخپل طعن کې دروغجن نه وي. او ددې طعن

په وجه د ګواهانو ګواهي معتبر نه وي.نو هرکله چې دوي (دوه) ظاهر معارض او مقابل شو.نو يو اړخ ته ترجيح ور کاوه لپاره به قاضي د ګواهانو د حال معلومات کوي.نوکه د تحقيق او تفتيش نه روسته که د ګواهانو عادل کيدل ثابت شو.نود ګواهانو ظاهر ته به ترجيح حاصل وي.او که ددوي عادل کيدل ثابت نشو.بلکه د مدعى عليه ذکر شوي طعن ثابت شو.نود مدعى عليه ظاهر ته به ترجيح حاصل وي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ او امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله فرمايي لَا بُدَّ أَنْ يَسْأَلَ عَنْهُمْ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ فِي سَائِرِ الْحُقُوقِ[1] چه په ټولو حقونو کې په پټه او په ښکاره د ګواهانو عدالت معلومات کول ضروري دي.

تشريح:- حضرت امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائي چه په ټولو حقوقو کې خفيه او علانيه د ګواهانو حال معلومول ضروري دي.که مدعى عليه په ګواهانو باندې طعن کړي وي.اوکه طعن نه وي کړې.امام احمد او امام شافعي رحمهما الله هم ددې قائل دي.امام مالك رحمه الله فرمائي.که ګواه په عدالت يعنى په ديانت او امانت او صداقت کې په خلګو کې مشهور وي.نو قاضي به ددوي د حال معلومات نه کوي.اوکه ددوي جرح مشهور وي.يعنى په داسې شي سره مشهور وي.چه د هغې په وجه ګواهي ردکيږي.نو په داسې صورت کې به د هغوي ګواهي ردکولې شي.او که ددوي عدالت او جرح مشکوك وي.نو قاضي به ددوي د حال معلومات کوي.

لِأَنَّ الْقَضَاءَ مَبْنَاهُ عَلَى الْحُجَّةِ وَهِيَ شَهَادَةُ الْعُدُولِ دليل دا دې چې د قضاء بنا (بنياد) په حجت باندې دې اوحجت د عادل ګواهانو ګواهي ده. فَيَتَعَرَّفُ عَنِ الْعَدَالَةِ وَفِيهِ صَوْنُ قَضَائِهِ عَنِ الْبُطْلَانِ نود عدالت پوښتنه به کوي او په دې کې د قاضي د فيصلې باطلولو ساتنه دي.

حل اللغة: ① مبنا-بنياد-② الحجة-دليل-③ صون-حفاظت-④ البطلان-باطل کيدل

تشريح:- د صاحبينو رحمهما الله ① دليل دادې چه د قاضي د فيصلې دارومدار په حجت باندې دې.او حجت نوم دې د عادل ګواهانو د شهادت.اود ګواهانو د عدالت حکم چونکه د قاضي د معلومات کاوه نه روسته کيږي.په دې وجه قاضي باندې د ګواهانو د عدالت او ديانت په اړه کې معلومات کول ضروري دي.② دوهم دليل دادې چه د ګواهانو د حال معلومولو په صورت کې د قاضي فيصله باطليدلو نه محفوظ کيږي.په دې طريقه که قاضي د ګواهانو حال معلومولو نه بغير څه فيصله ورکړله او روسته د ګواهانو غلام کيدل، يا کافر کيدل، يا محدود في القذف کيدل، ښکاره شو.نود قاضي دا فيصله به باطل وي.اوکه د حال معلومولو نه روسته ئې فيصله ورکړله نو ددې فيصلې باطليدلو نوبت (مهلت) به نه راځي.اود قاضي فيصله د امکان حده پورې د باطليدلو نه محفوظ کول ضروري دي.نود قاضي فيصله د باطلولو نه د بچ کاوه لپاره د ګواهانو حال معلومول ضروري اوګرځولې شو.

وَقِيلَ هَذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ او ويلې شوي دي چه دا د عهد او زمانې اختلاف دې. وَالْفَتْوَى عَلَى قَوْلِهِمَا فِي هَذَا الزَّمَانِ او په دې زمانه کې فتوى د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.

حل اللغة: ① عصر-زمانه-② المستورة-پټ خط-③ الحلى-شکل،صورت-④ المعدل-تزکيه کونکې

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه بعض مشائخ فرمائيلي دي چه د حضرت امام صاحب اود صاحبينو رحمهم الله په منځ کې د ګواهانو په ظاهري عدالت باندې د اکتفاء کاوه او نه کاوه په اړه کې چې کوم اختلاف دې.دا په هيڅ حجت او برهان (دليل) باندې مبنى نه دې بلکه دا د زمانې اختلاف دې.يعنى امام ابوحنيفه رحمه الله د ګواهانو په ظاهري عدالت باندې د اکتفاء کاوه حکم په هغه زمانه کې ورکړې دې په کومه زمانه کې چې د صلاح او نيکۍ غلبه وه.خلګو به په عامه توګه (عام طور) رښتيا ويل.رسول الله ﷺ د هغه زمانې د ښه کيدلو شهادت ورکړې

[1] القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير (٦/٤٥٨) ورد المحتار (٤/٤١٤) والهندية (٣/٤٥٠) والبحر الرائق (٧/٣١٢) نقلاً عن القول الراجح (٢/١٣٠).



دې.لکه چې فرمائيلي ئې دي. «خَيْرُ الْقُرُونِ قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ يَفْشُوا الْكَذِبُ» په دې حديث کې د الله رسول ﷺ درې زمانو (عهدصحابه،عهد تابعين، عهد تبع تابعين) ته ښه ويلې دي.اود څلورم عهد په اړه کې ئې او فرمائيل.چه په دغه زمانه کې به دروغ زيات وي.دروغ ويل به عام وي. خلګ به دروغ عقلمندي (هوښيارتوب) او سياست ګڼړي.حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله چونکه د قرن ثاني او ثالث په خلګو کې دې.ځکه حضرت امام صاحب رحمه الله د خير د غلبه په وجه د ګواهانو په ظاهري عدالت باندې اکتفاء کړې ده.او صاحبين رحمهما الله چونکه د قرن رابع په خلګ وکې دي.ځکه دوي د غلبې د شر اود کذب او دروغ عام کيدلو په وجه په ظاهري عدالت باندې اکتفاء نه ونکړله.بلکه د ګواهانو د حال تحقيق او تفتيش ئې ضروري ګرځولې دې.

علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په دې زمانه کې فتوى د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.ځکه چې په دې زمانه کې عوام خو لاڅه کوې،خواص هم د دروغ ويلو او کذب نه محفوظ نه دي.په دې وجه د ګواهانو د رښتيا يا دروغجن کيدلو تحقيق او تفتيش ضروري او ګرځولې شو.د ګواهانو د تزکيه او تعديل کولوحکم

## د ګواهانو د تزکيه او تعديل کولوحکم

قَالَ ثُمَّ التَّزْكِيَةُ فِي السِّرِّ أَنْ يَبْعَثَ الْمَسْتُورَةَ إِلَى الْمُعَدِّلِ بيا خفيه تزکيه داده.چه تعديل کونکي ته خفيه رقعه وليږي. فِيهَا النَّسَبُ وَالْحُلَى وَالْمُصَلَّى چې په هغې کې د ګواهانو نسب، ددوي حليه(شکل وصورت) او جمات اوليکي. وَيَرُدُّهَا الْمُعَدِّلُ او تعديل کونکي هغه رقعه (ځواب اوليکي او حاکم ته) واپس کړي.

تشريح:- تزکيه او تعديل د چا د عادل او غيرعادل کيدلو د تحقيق کاوه نوم دې. مزکي او معدل، تعديل او تزکيه کونکي ته وائي.مستوره هغه خط دې.په کوم کې چې قاضي د ګواهانو نوم،نسب، حليه (شکل وصورت) او ددوي د محلې د جمات نوم اوليکي.اود خپل امين په پټه باندې ئې په خفيه طريقه مزکي ته اوليکي.چه دا خط د عوامو د کتلو نه پټوله مقصود دي.په دې وجه ددې نوم مستوره کيخودې شو.

تزکيه في السر داده.چه قاضي د ګواهانو د عدالت معلومولو لپاره د مزکي او معدل په نوم يو خط اوليکي.او په پټه ئې د خپل امين په ذريعه مزکي ته اوليکي.په خط کې د ګواهانو نوم، ددوي نسب، ددوي حليه او ددوي د محلې د جمات نوم اوليکي.او ګواهان بازاري سړي وي.نو ددوي د بازار نوم اوليکي.او مناسب داده.چه مزکي (تعديل کونکې) صالح، زاهد، په خلګ وکې ډير اعتمادي او پرهيزګار وي.امانت دار او صاحب علم وي.اود خلګو سره تعلقات ساتونکې سړې وي.بالکل ګوشه نشين او صوفي ټائپ (قسم) نه وي.چه د خپل نيك بختۍ په وجه هر سړې نيك ګڼړي.د هر يو په وينا باندې اعتماد کوي.مزکي حريص او فقير هم نه وي.ځکه چې حريص او فقير سړې د مال په چکر(لالچ) کې راتلې شي.او په صحيح اطلاع ور کاوه کې ناکام کيداې شي.نو مزکي به د ګواهانو په اړه کې ددوي د ګوانډيانو، دوستانو،هم پيشه خلګ و، او ددوي سره د ناستې پاستې خلګو نه معلومات کوي.د تحقيق او تفتيش نه روسته که مزکي ته ددوي عادل کيدل معلوم شو.نو مزکي چې کوم خط د قاضي په نوم ليکي.په هغې کې به د ګواه د نوم لاندې دا الفاظ ليکي. «هو عدل مرضي مقبول جائز الشهادة» يعني دا ګواه زما په نيز عادل، خوښ، مقبول، او جائز الشهادة دې.او که ددوي غيرعادل کيدل معلوم شو.نود ګواه د نوم لاندې دې هيڅ نه ليکي.چه دده پرده وانخستلې شي.يا صرف (والله اعلم) دې اوليکي.حاصل داچه د تحقيق او تفتيش په نتيجه کې چې د ګواهانو په کومو عيبونو باندې خبر شوې وي. هغه دې نه ليکي.البته که مزکي ته دا يره وي.چه د عيوب او فسق صراحت نه کاوه په صورت کې قاضي ددوي په ګواهۍ سره فيصله کولې شي.نو په دې صورت کې د ګواهانو د عيبونو صراحت کاوه کې هيڅ باك نشته.اوکه مزکي د ګواه په عدالت او فسق دواړو باندې خبر نشو.نو دده د نوم لاندې دې (مستور) اوليکي.چه دده حال پټ دې.مزکي دې ټولې خبرې اوليکي.اود دغه د امين په ذريعه دې دا خط قاضي ته اوليکي.

قَالَ وَذَلِكَ فِي التَّزْكِيَةِ لَا يَظْهَرُ فَيُخْدَعَ أَوْ يُقْصَدَ او دا واړه خفيه کيدل پکار دي.چه ښکاره نشي.(تعديل کونکي سره

ګواه) دهوكه اونكړي.يا هغه ته د تكليف ور كاوه اراده اونكړي.

حل اللغة: ① يخدع- دهوكه او كړي-② يقصد-قصد اوكړي-③ تنتفی-چه نفی شي-④ تعديل-عادل كول

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د قاضي مزكي ته خط ليګل،اود مزكي تحقيق كول او قاضي ته راليګل، تولې خبرې په راز كي كښت ساتل پكار دی.ځكه چې د ښكاره كيدلو په صورت كي ګواه مزكي ته يا مدعی مزكي ته رشوت ور كاوه سره اخستې شي.اود رشوت نه قبلولو په صورت كي ګواه مزكي ته ضرر رسولې شي.نو ددې خطراتو په لحاظ پوره كاروائي پټه كول پكار دی.

وَفِي الْعَلَانِيَةِ لَابُدَّ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ الْمُعَدِّلِ وَالشَّاهِدِ او په علانيه تزكيه كي ضروري ده.چه قاضي تعديل كونكې او ګواه دواړه جمع كړي.لِتَنْتَفِيَ شُبْهَةُ تَعْدِيلِ غَيْرِهِ چې ددوی نه د علاوه د تعديل شبه ختمه شي.

تشريح:- او تزكيه فی العلانيه داده.چه قاضي ګواه او تعديل كونكې مزكي دواړه د قضاء په مجلس كي جمع كړي.اود تعديل پوښتنه اوكړي.او قاضي مزكي ته اووائي.د چا چې تا تعديل كړې دې.آيا دا هم هغه ګواه دې.مزكي به اووائي.آو ما هم ددې ګواه تعديل كړې دې.ګواه ارخ ته اشاره كول ځكه ضروري دی.چه دده نه علاوه د بل ګواه د تعديل شبه پيدا نشی.ځكه چې كله دوې (دوه) سړي په نوم او نسب دواړو كي شريك كيداې شی.نو مزكي كه ګواه ارخ ته اشاره اونكړي.بلكه دده نوم او نسب بيان كړي.او تعديل اوكړي.نود قاضي ذهن دده هم نام او هم نسب بل سړي ارخ ته منتقل كيداې شي.

وَقَدْ كَانَتِ الْعَلَانِيَةُ وَحْدَهَا فِي الصَّدْرِ الْأَوَّلِ او په صدراول كي تعديل صرف علانيه وو. وَوَقَعَ الْاِكْتِفَاءُ بِالسِّرِّ فِي زَمَانِنَا تَحَرُّزًا عَنِ الْفِتْنَةِ. او زمونږ په زمانه كي په خفيه تعديل باندې اكتفاء اوكړې شوه.چه د فتنې نه ساتنه اوشي. وَيُرْوَى عَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله تَزْكِيَةُ الْعَلَانِيَةِ بَلَاءٌ وَفِتْنَةٌ اود امام محمد رحمه الله نه روايت دې.چه علانيه تعديل بلاء او فتنه ده (يعنی د الله د ارخه امتحان او ازميښت دې)

حل اللغة: ① الصدر-زمانه-② الاكتفاء-بسوالې -③ تحرز-بچ كيدل-④ الفتنة-د الله امتحان

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په صدراول يعنی په عهد رسالت او عهدصحابه كي تعديل صرف علانيه وو.ترڅو چې په ګواهانو كي به په يو سړي كي څه عيب وو.نو مزكي به هغه ښه په ښكاره بيانولو.ځكه چې زمانه د خير وه.اود خلګو په زړونو كي د آخرت يره وه.په دې وجه به مزكي ته نه د مدعي د ارخه د ضرر رسولو يره وه.اونه به د ګواهانو د ارخه څه خطره وه.پاتې شو د موجود زمانې حال نو په دې زمانه كي به په خفيه تعديل باندې اكتفاء كولې شي.ځكه چې د علانيه تعديل په صورت كي به ګواه او مدعي مزكي سره د مقابلې او جنګ جګړې لپاره تيار شي.او په دوی كي به خپل منځ كي عداوت او دشمني قائم شي.نو ددې فتنې نه د بچ كيدلو په خاطرخفيه تعديل كافي كيداې شي.

ثُمَّ قِيلَ: لَابُدَّ أَنْ يَقُولَ الْمُعَدِّلُ هُوَ عَدْلٌ جَائِزُ الشَّهَادَةِ بيا ونيلي شوي دی.چه تعديل كونكی لپاره دا ونيل ضروري دی.چه دا ګواه آزاد، عادل، اوجائز الشهادت دې. لِأَنَّ الْعَبْدَ قَدْ يُعَدَّلُ ځكه چې كله غلام هم عادل وی.

حل اللغة: ① لابد-ضروري ده-② حر-ازاد\اصيل-③ يكتفی -بسوالې كولې شی-④ الدار-كور،وطن

تشريح:- بعض مشائخ فرمائي.چه تعديل كونكې دې د ګواه په اړه كي په «هو عدل جائز الشهادة» باندې اكتفاء نه كوی.بلكه د،،حر،، لفظ ونيل هم ضروري دی.يعنی دا دې اووائي.چه دا ګواه آزاد دې.عادل دې.جائز الشهادت دې.ځكه چې ډير ځله غلام هم عادل كيداې شی.حالانكه دده شهادت معتبر نه وی.په دې وجه د ګواه آزادكيدلو وضاحت هم ضروري دې.

وَقِيلَ يَكْتَفِي بِقَوْلِهِ هُوَ عَدْلٌ او ونيلي شوی دی.چه پخپل دې قول دې اكتفاء اوكړي.چه هغه عادل دې. لِأَنَّ الْحُرِّيَّةَ ثَابِتَةٌ بِالدَّارِ وَهٰذَا أَصَحُّ ځكه چې آزاد كيدل په دارالاسلام سره ثابت دی.او هم دا قول اصح دې.



تشريح:- او بعض مشائخ فرمائي.چه د ګواه په اړه كي «هو عدل» ونيل كافي دی.،،حر،،او،،جائز الشهادت،، ونيل شرط نه دی.ځكه چې د ګواه په دارالاسلام كي د كيدلو په وجه آزاد كيدل ښكاره دی.علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه هم دا قول زيات صحيح دې.شوافع او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی.او امام مالك رحمه الله فرمائي.چه د مزكي لپاره د ګواهانو په اړه كي ،، عادل مرضی،، ونيل ضروري دی.په دې دواړه وصفونو كي په يو وصف باندې اكتفاء كول جائز نه ده.

## د ګواه په اړه كښې د مدعي عليه د تعديل حكم

قَالَ وَفِي قَوْلِ مَنْ رَأَى أَنْ يَسْأَلَ عَنِ الشُّهُودِ لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُ الْخَصْمِ إِنَّهُ عَدْلٌ مَعْنَاهُ قَوْلُ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ() فرمائي چه د چا په اجتهاد كي د ګواهانو د حال معلومات كول ضروري دی.(د هغه په قول باندې) خصم يعنی د مدعی عليه قول چې ګواه عادل دې.نه قبليږي.

تشريح:- تير شوی سره د مولښتی تشريح لاندې ذكر كړې شوی دی.كه مدعی عليه د مدعی په ګواهانو باندې طعن اونكړي.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د ګواهانو په ظاهري عدالت باندې اكتفاء كولې شي. ددوی د تعديل او ددوی د حال پوښتنه كاوه هيڅ اړتيا نشته.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په دې صورت كي هم د ګواهانو تعديل او ددوی د حال پوښتنه كول ضروري دې.نود صاحبينو رحمهما الله په قول باندې تفريع بيانولو سره اوونيل.كه مدعی عليه د مدعی د ګواهانو په اړه كي اوونيل.چه دا ګواه عادل دی.نود ظاهرالرواية مطابق د مدعی عليه دا قول يعنی د مدعی عليه د ګواهانو تعديل كول به مقبول او معتبر نه وی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ أَنَّهُ يَجُوزُ تَزْكِيَتُهُ، اود امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله نه نقل دی چه د مدعی عليه تعديل جائز دې. لٰكِنْ عِنْدَ مُحَمَّدٍ يَضُمُّ تَزْكِيَةَ الْآخَرِ إِلَىٰ تَزْكِيَتِهِ خود امام محمد رحمه الله په نيز به د مدعی عليه تزكيه سره د بل تزكيه ملاوولې شی. لِأَنَّ الْعَدَدَ عِنْدَهُ شَرْطٌ ځكه چې د امام محمد رحمه الله په نيز عدد شرط دې.

تشريح:- او په نوادر كي د صاحبينو رحمهما الله نه نقل دی.چه د مدعی عليه تعديل كافي دې.يعنی كه مدعی عليه د مدعی د ګواهانو په اړه كي اوونيل.چه دا ګواهان عادل دی.نود مدعی عليه دا قول به معتبر وی.او ددوی په ګواهئ به فيصله كولې شی.خود امام محمد رحمه الله په نيز د مدعی عليه تعديل سره به دوهم تعديل كونكې ملاوولې شی.يعنی د مدعی عليه تعديل سره د يو دوهم سړي تعديل كول هم ضروري دی.ځكه چې د حضرت امام محمد رحمه الله په نيز په تعديل كي كم ازكم د دوې (دوه) مزكي او معدلانو (تعديل كونكو) كيدل شرط دی.دادې واضحه وی.چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز د مدعی عليه تعديل به هغه وخت معتبر وی.كله چې مدعی عليه پخپله عادل وی.ځكه چې د معدل مزكي (تعديل كونكی) عادل كيدل د ټولو په نيز شرط دی.نوكه مدعی عليه فاسق وی.يا دده حال پټ وی.اود مدعی عليه د دعوې انكار ئې نه وی كړې.بلكه سكوت (اوخاموشی) ئې كړې وی.بيا ئې د مدعی د ګواهانو په اړه كي اوونيل.چه دا ګواهان عادل دی.نود مدعی عليه دا تعديل به صحيح او معتبر نه وی.

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ فِي زَعْمِ الْمُدَّعِي وَشُهُودِهِ أَنَّ الْخَصْمَ كَاذِبٌ فِي إِنْكَارِهِ مُبْطِلٌ فِي إِصْرَارِهِ اود ظاهرالرواية وجه داده.چه د مدعی او دده د ګواهانو په ګمان كي مدعی عليه پخپل انكاركي دروغجن او پخپل اصرار كي باطل باندې دې. فَلَا يَصْلُحُ مُعَدِّلًا نو هغه به د مزكي كيدلو لائق نه وی.

حل اللغة: ① زعم -ګمان-② خصم-جګړه كونكې-③ مبطل-باطلونكې-④ يصلح-صلاحيت لری

تشريح:- د ظاهرالرواية وجه داده.چه مدعی د خپلې دعوې ثابتولو لپاره ګواه هغه وخت پيش كوی.كله چې مدعی

---

(1) القول الراجح هوهذا قول الإمام رحمه الله كذا فی فتح اقبرد(٦٠٦\٤٦) والدرالمختار(٤١٤\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٣١\٢)_

عليه د مدعى د دعوې انكار كوى.او پخپل انكار باندې ټينګ (كلك) ولاړ وى.اومدعى هغه د دعوې په انكار كي دروغجن او په باطل باندې ګڼړى.نود مدعى او دده د ګواهانو په اعتقاد كي مدعى عليه پخپل انكار دروغجن او پخپل مخالفت كي باطل باندې دې.او هركله چې مدعى عليه د مدعى او دده د ګواهانو په اعتقادكي دروغجن او په باطل باندې دې.او كوم كس چې دروغجن او په باطل باندې وى.هغه عادل نشى كيدې.نو مدعى عليه به د معدل او مزكى جوړيدلو لائق نه وى.خكه چې د مزكى لپاره عادل كيدل بالاتفاق شرط دى.

وَمَوْضُوْعُ الْمَسْأَلَةِ إِذَا قَالَ هُمْ عُدُوْلٌ إِلَّا أَنَّهُمْ أَخْطَئُوْا أَوْ نَسُوْا، اود مسئلې صورت دادې.چه كله مدعى عليه اوونيل.چه دا ګواهان عادل دى.خو دوى خطاء شو.يا دوى هيركړل. أَمَّا إِذَا قَالَ صَدَقُوْا أَوْ هُمْ عُدُوْلٌ صَدَقَةٌ خوكه مدعى عليه اوونيل.چه دې ګواهانو رشتيا اوونيل.يا دا ګواهان عادل رشتونى دى. فَقَدِ اعْتَرَفَ بِالْحَقِّ نو ده د حق اقرار اوكړو.

حل اللغة: ① موضوع -صورت-② اخطاوا-خطا شول-③ نسوا-هيرئې كړل-④ اعترف-اقرار ئې وكړو

تشريح:- دا عبارت د يو سوال خواب دې.سوال دادې.چه د مدعى عليه د ګواهانو تعديل كول په حقيقت كي خپل خان باندې د مدعى د حق اقراركول دى.اود مقر(اقراركونكى) عادل كيدل بالاتفاق شرط نه دى.نود فاسق كيدلو باوجود د مدعى عليه تعديل مقبول كيدل پكار دى؟
خواب ٭ ددې خواب دادې.ددې مسئلې صورت دادې.چه كله مدعى عليه اوونيل.چه دا ګواهان عادل دى.خو دوى خطاء شو.يا دوى هيركړى دى.او دا ښكاره ده.چه دا ډول كلام د كوم حق اقرار نه وى.يعنى د مدعى عليه دې كلام ته د مدعى د حق اقرار نشى ونيلې كيدې.بلكه دا د ګواهانو تعديل دى.اودا خبره وړاندې تيره شوې ده.چه د تعديل كونكى عادل كيدل شرط دى.نو مدعى عليه كوم چې د مدعى د ګواهانو تعديل كونكى دې.د هغه عادل كيدل هم شرط دى.حالانكه مدعى عليه د مدعى اود ګواهانو په اعتقادكي د دعوې نه د انكار كاوه په وجه دروغجن او غيرعادل دې.نو هركله چې مدعى عليه دروغجن او غيرعـادل دې.نو دده د مدعى د ګواهانو تعديل كول به هم مقبول او معتبر نه وى.البته كه مدعى عليه اوونيل.چه د مدعى ګواه رشتونى دى.يا وې ونيل.چه عادل، رشتونى دى.نو ګويا مدعى عليه خپل خان باندې د مدعى د حق اقرار اوكړو.او هركله چې مدعى عليه د مدعى د حق اقرار اوكړو.نو قاضى به د مدعى عليه د اقرار كاوه په وجه فيصله كوى.د ګواهانو د ګواهئ په وجه نه كوى.

### د ګواهانو د تعديل كونكو تعداد

وَإِذَا كَانَ رَسُوْلُ الْقَاضِيْ الَّذِيْ يَسْأَلُ عَنِ الشُّهُوْدِ وَاحِدًا جَازَ وَالْإِثْنَانِ أَفْضَلُ فرمائى.او هركله چې د قاضى داسې قاصد (مزكى) چې د هغه نه د ګواهانو د حال پوښتنه كولې شى.يو وى.نو جائز دې.او دوې (دوه) افضل دى. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ (١) اودا د ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز دى.

تشريح:- په متن كي لفظ ،،يُسال،، د مجهول صيغه ده.او ﴿الذى يسال عن الشهود﴾ د رسول صفت او ددې معنى به دا وى.چه د قاضى داسې قاصد چې د هغه نه د ګواهانو په اړه كي پوښتنه كولې شى.اود چا نه چې د ګواهانو په اړه كي پوښتنه كولې شى.هغه ته مزكى او معدل ونيلې شى.نو معلومه شوه.چه په متن كي د رسول نه مراد هغه مزكى دې.د كوم نه چې قاضى د ګواهانو د حال معلومات كوى.اوس حاصل د مسئلې دا شو.چه د حضرت امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله په نيز تزكيه كي د يو سړى كيدل كافى دى.يعنى كه د ګواهانو د حال پوښتنه كاوه لپاره قاضى يو سړې مزكى مقرر كړې وى.نو جائز دې.خو دوې (دوه) كيدل افضل دى.دغه ډول كه

(١) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى الدرالمختار(٤١٦\٤) وكنز الدقائق (٢٥٨) وملتقى الأبحر(٢٦٣\٣)نقلاً عن القول الراجح (١٣٢\٢)-



قاضى مزكى اړخ ته يو سړې قاصد جوړكړو.او وې ليګلو.يا مزكى قاضى اړخ ته يو سړې قاصد جوړكړو.او وې ليګلو.نو جائز دى.او دغه ډول د ګواه د بيان ژباړه كونكې كه يو سړې وى.نو جائز دې.يعنى لكه څنګه چې د تزكيه او تعديل كاوه لپاره د يوسړى كيدل كافى دى.دوې (دوه) كيدل ضرورى نه دى.دغه ډول د قاضى نه مزكى اړخ ته.اود مزكى نه قاضى اړخ ته د پيغام رسولو دپاره.اود ګواه د بيان ژباړه كاوه لپاره دوې (دوه) سړى كيدل ضرورى نه دى.هم دا د امام شافعى رحمه الله قول دې.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.اود امام احمد رحمه الله يو روايت هم دا دى.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا يَجُوْزُ إِلَّا اثْنَانِ، او امام محمد رحمه الله فرمائى.چه جائز نه دى.مګر دوه. وَالْمُرَادُ مِنْهُ الْمُزَكِّيْ، او ددې نه مراد مزكى دې. وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ رَسُوْلُ الْقَاضِيْ إِلَى الْمُزَكِّيْ وَالْمُتَرْجِمُ عَنِ الشَّاهِدِ او هم په دې اختلاف باندې د قاضى قاصد دې.كوم ئې چې مزكى ته ليګلې دې.اود ګواه بيان په ژباړه كونكى كي دې.

حل اللغة: اثنان -دوه-المزكى-تزكيه كونكې-المترجم-ژباړه كونكې-تبتنى-بنا كيږى

تشريح:- (حضرت امام محمد رحمه الله فرمائى.چه د تزكيه او پيغام رسولو.اود ګواه د بيان ژباړه كاوه لپاره د دوې (دوه) سړو كيدل ضرورى دى.هم دا د امام شافعى رحمه الله قول دې.اود امام احمد رحمه الله يو روايت هم دادى.

لَهُ: أَنَّ التَّزْكِيَةَ فِيْ مَعْنَى الشَّهَادَةِ د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه تعديل كول د ګواهئ په معنى كي دى. لِأَنَّ وِلَايَةَ الْقَضَاءِ تَنْبَنِيْ عَلٰى ظُهُوْرِ الْعَدَالَةِ وَهُوَ بِالتَّزْكِيَةِ خكه چې ولايت د قضاء په عدالت ښكاره كيدلو باندې مبنى دى.اود عدالت ښكاره كيدل چونكه په تزكيه او تعديل سره كيږى.

تشريح:- د امام محمد رحمه الله دليـل دادې.چه تزكيه او تعديل كول د شهادت په معنى كي دى.خكه چې د قاضى ولايت،د ګواهانو د عدالت په ښكاره كيدلو باندې موقوف دى.يعنى كله چې د ګواهانو عدالت ښكاره شى.نو هله قاضى ته د قضاء او فيصلې اجازت وى.اود ګواهانو د عدالت ښكاره كول په تزكيه او تعديل باندې موقوف دى.يعنى د ګواهانو عادل كيدل به هغه وخت ښكاره كيږى.كله چې مزكى ددوى تعديل او تزكيه اوكړى.نو هركله چې ولايت د قضاء په عدالت ښكاره كيدلو باندې موقوف شو.اود ګواهانو عدالت ښكاره كيدل، په تزكيه باندې موقوف شو.نود نتيجې په طور ثابت شو.چه ولايت د قضاء، په تزكيه او تعديل باندې موقوف دې.او ولايت د قضاء د ولايت د شهادت نه مستفاد دې.يعنى د قاضى جوړيدلو اهل به هغه سړې وى.كوم چې د شهادت اهل وى.نو هركله چې ولايت د قضاء په تزكيه باندې موقوف دې.نو ولايت د شهادت به هم په تزكيه باندې موقوف وى.يعنى ګواه به د ګواهئ ور كاوه اهل هغه وخت ګرخولې شى.كله چې مزكى ددوى د عادل كيدلو شهادت وركړى.او هركله چې د ګواهانو ګواهى وركول په دې باندې موقوف دى.چه مزكى د ګواهانو د عادلې كيدلو شهادت وركړى.نود مزكى تزكيه د شهادت په معنى كي شوه.او هركله چې تزكيه د شهادت په معنى كي شوه.نود تزكيه لپاره به هم هغه شرطونه وى.كوم شرطونه چې د شهادت لپاره دى.

فَيُشْتَرَطُ فِيْهِ الْعَدَدُ كَمَا يُشْتَرَطُ الْعَدَالَةُ فِيْهِ، نو په تعديل كي به عدد شرط كولې شى.لكه څنګه چې په دې كي عدالت شرط دې. وَتُشْتَرَطُ الذُّكُوْرَةُ فِي الْمُزَكِّيْ فِي الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ او(لكه څنګه چې د) حدودو او قصاص د ګواهانو تعديل كونكى مذكر كيدل شرط دى.

تشريح:- او په شهادت كي چې څنګه د ګواهانو عادل كيدل شرط دى.دغه ډول د ګواهانو كم ازكم دوې (دوه) كيدل هم شرط دى.نوهركله چې د ګواهانو په شهادت كي كم ازكم دوې (دوه) كيدل شرط دى.نو تزكيه كومه چې د شهادت په معنى كي ده.په دې كي به هم كم ازكم دوې (دوه) مزكى كيدل شرط وى.هم دا وجه ده.چه په حدودو او قصاص كي چونكه د ګواهانو مذكر كيدل شرط دى.نود ائمه اربعه په دې باندې اتفاق دې.چه د حدودو او قصاص د ګواهانو تزكيه او تعديل كونكو مذكر كيدل هم شرط دى.په حد زنا كي چونكه د ګواهانو څلور كيدل ضرورى دى.نو ددوى د مزكيانو (تزكيه كونكو) څلور كيدل به هم ضرورى وى.

**وَلِهٰذَا أَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى الشَّهَادَةِ** اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې چه تزکیه د شهادت په معنی کې نه ده. **وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ فِيهِ لَفْظَةُ الشَّهَادَةِ وَمَجْلِسُ الْقَضَاءِ** هم په دې وجه په تزکیه کې لفظ د شهادت او مجلس د قضاء شرط نه دې.

**تشریح:-** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې چه تزکیه د شهادت په معنی کې نه ده.هم دا وجه ده.چه په تزکیه کې نه لفظ د شهادت شرط دې اونه مجلس د قضاء شرط دې.حالانکه دا دواړه خبرې په شهادت کې شرط دی.نو هرکله چې تزکیه د شهادت په معنی کې نه ده.نو په تزکیه کې به هغه شیان هم شرط نه وی.کوم چې په شهادت کې شرط دی.

**وَاشْتِرَاطُ الْعَدَدِ أَمْرٌ حُكْمِيٌّ فِي الشَّهَادَةِ فَلَا يَتَعَدَّاهَا** او په شهادت کې د عدد شرطیت یو حکمی امر دې.نو هغه به د شهادت نه نه متجاوز کیږي.

**حل اللغة:** ① **اشتراط** -شرط کول- ② **العدد**-شمار- ③ **یتعدا**-تجاوز نې اوکړو- ④ **تزكية السر**-پټه تزکیه

**تشریح:-** اوکه موږ دا اومنو.چه په تزکیه کې هم هغه شیان شرط دی.کوم چې په شهادت کې شرط دی.نود مزکیانو دوې (دوه) کیدل به بیا هم نه ثابتیږي.ځکه چې په شهادت کې عدد یعنی د دوې (دوه) کیدلو شرط خلاف قیاس په نص. ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ﴾ سره ثابت دې.ګنی د قیاس تقاضا داده.چه په شهادت کې عدد (دوې (دوه) کیدل) شرط نه وی.ځکه که ګواه د یو په ځائې دوې (دوه) وی.نود کذب احتمال به بیا هم پاته وی.ځکه چې د کذب بالکلیه انقطاع په تواتر سره کیږي.او پاتې شو د صدق راجح کیدل،نودا په عدالت سره کیږي.لکه څنګه چې په روایت د حدیث کې د یو عادل سړی حدیث هم قبلولې شی.نو معلومه شوه.چه د صدق راجح کیدل په عدد سره نه ثابتیږي.بلکه په عدالت سره ثابتیږي.حاصل دا چې یقین خو په تواتر سره حاصلیږي.اوعمل د یو عادل په خبر سره ثابتیږي. نود دوې (دوه) عدد سره نه خو یقین حاصلیږي.اونه عمل کول ثابتیږي.نو ثابته شوه.چه قیاس په شهادت کې د دوې (دوه) عدد تقاضا نه کوی.بلکه د دوې (دوه) عدد په شهادت کې خلاف قیاس نص سره ثابت دې.او قاعده ده.چه کوم شی په نص سره خلاف قیاس ثابت وی.هغه بل اړخ ته متعدی او متجاوز کیږي نه.نو عدد یعنی دوې (دوه) کیدل د شهادت نه تزکیه اړخ ته متعدی او متجاوز کیږي نه.او په تزکیه کې به عدد یعنی دوې (دوه) مزکیان (تزکیه کونکی) کیدل شرط نه وی.

## د مزکی د اهل شهادت کیدلو حکم

**وَلَا يُشْتَرَطُ أَهْلِيَّةُ الشَّهَادَةِ فِي الْمُزَكِّي فِي تَزْكِيَةِ السِّرِّ** او په خفیه تزکیه کې په مزکی کې د شهادت اهلیت کیدل شرط نه دی. **حَتّٰى صَلَحَ الْعَبْدُ مُزَكِّيًا** تردې چې د غلام مزکی کیدل جائز دی. **فَأَمَّا فِي تَزْكِيَةِ الْعَلَانِيَةِ فَهُوَ شَرْطٌ** بهرحال په علانیه تزکیه کې خودا شرط دې.

**تشریح:-** ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.چه د خفیه تعدیل او تزکیه په صورت کې د مزکی اهل شهادت کیدل شرط نه دی.یعنی کوم کس چې مزکی مقرر کړې شوې دې.د هغه اهل شهادت کیدل شرط نه دی.اګرچه عادل کیدل شرط دی.ځکه د غلام مزکی کیدل جائز دی.نوکه قاضی غلام دده د مولا یا د بل کوم سړی تزکیه او تعدیل کاوه لپاره مقرر کړو.نو جائز دې.

**وَكَذَا الْعَدَدُ بِالْإِجْمَاعِ عَلٰى مَا قَالَهُ الْخَصَّافُ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او دغه ډول بالاجماع عدد شرط دې.په هغه بناء باندې کومه چې خصاف بیان کړې ده. **لِاخْتِصَاصِهَا بِمَجْلِسِ الْقَضَاءِ** ځکه چې علانیه تعدیل مجلس د قضاء سره مختص دې.

**تشریح:-** دغه ډول که پلار پخپله دده د خوی تزکیه کاوه دپاره، یا زوې پخپله دده د پلار تزکیه کاوه لپاره مزکی مقرر کړې شو.نو جائز دی.حالانکه د غلام د خپل مولا په حق کې اود پلار د خپل خوی په حق کې ،اود خوی د خپل پلار په حق کې شهادت ورکول جائز نه دی.البته د علانیه تزکیه په صورت کې د مزکی اهل شهادت کیدل شرط دی.دغه ډول علانیه طور باندې د تزکیه کونکو د امام خصاف رحمه الله د قول مطابق بالاجماع دوې (دوه) کیدل شرط دی. ځکه چې علانیه تزکیه او تعدیل د قضاء مجلس سره خاص دی.اود قضاء مجلس سره مختص کیدل ددې خبرې علامت دې.چه علانیه تعدیل د شهادت په معنی کې دې.اوهرکله چې علانیه تعدیل د شهادت په معنی کې



دی.نود شهادت پشان په تزکیه کې به هم عدد شرط وی.یعنی کم ازکم دوې (دوه) مزکیان کیدل به شرط وی.اود مزکیانو اهل شهادت کیدل به هم ضروری وی.

اعتراض:- دلته یو اعتراض دې.هغه داچه په علانیه تزکیه کې د عدد (دوه) شرط کیدل،خفیه تزکیه کې د عدد نه شرط کیدلو منافی دی.یعنی په علانیه تزکیه کې د عدد شرط کیدل،او په خفیه تزکیه کې د عدد نه شرط کیدل، په دې دواړو کې منافات دې.ځکه چې کوم سړې په خفیه تزکیه کې مزکی وی.هم هغه به علانیه طور باندې مزکی وی.نو هرکله چې په خفیه تزکیه کې عدد شرط نه دې.نو په علانیه تزکیه کې به عدد څنګه شرط وی.یا کله چې په علانیه تزکیه کې عدد شرط دې.نو په تزکیه کې هم عدد شرط کیدل پکار دی؟

ځواب:- ددې ځواب دادې.چه د امام خصاف رحمه الله په نیز دا شرط دې.چه خفیه مزکی د علانیه مزکی غیر وی.یعنی کوم چې خفیه وی.هغه به علانیه مزکی نه وی.او څوك چې علانیه مزکی وی.هغه به خفیه مزکی نه وی.اوهرکله چې دا خبره ده.نو ممکن ده.چه په علانیه تزکیه کې عدد شرط وی.او په خفیه تزکیه کې عدد شرط نه وی.او زموږ په نیز چې کوم سړې خفیه تزکیه او تعدیل کوی.هم هغه سړې چونکه علانیه هم تزکیه کوی.په دې وجه عدد (دوه) کیدل، نه په خفیه تزکیه کې شرط دې.اونه به په علانیه تزکیه کې شرط وی.

**قَالُوا: يُشْتَرَطُ الْأَرْبَعَةُ فِي تَزْكِيَةِ شُهُودِ الزِّنَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او مشائخ فرمائی.چه د امام محمد رحمه الله په نیز د زنا د ګواهانو تعدیل کولوکې د څلور سړو کیدل شرط دی.

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه امام محمد رحمه الله د عدد په حق کې تزکیه په شهادت باندې قیاس کړې دې.په دې وجه مشائخ فرمائی.چه د امام محمد رحمه الله په نیز د زنا د ګواهانو تزکیه او تعدیل کاوه لپاره د څلورو مزکیانو (تزکیه کونکی) کیدل شرط دی.یعنی لکه څنګه چې د زنا ثابتولو لپاره د څلورو ګواهانو کیدل ضروری دی.دغه ډول ددوی د تزکیه او تعدیل کاوه لپاره به هم څلور مزکیان کیدل ضروری وی.

## ګواهی اوه ګواهئ اداکولو بیان

**فَصْلٌ وَمَا يَتَحَمَّلُهُ الشَّاهِدُ عَلٰى ضَرْبَيْنِ:** فصل:ګواه چې د کوم شئ ګواهی اوچتوی (برداشت کوی).په دوې (دوه) قسمه دی. **أَحَدُهُمَا مَا يَثْبُتُ حُكْمُهُ بِنَفْسِهِ** په هغې کې یو هغه دې.چه د هغې حکم پخپله ثابتیږي. **مِثْلُ الْبَيْعِ وَالْإِقْرَارِ وَالْغَصْبِ وَالْقَتْلِ وَحُكْمِ الْحَاكِمِ** لکه بیع، اقرار، غصب، قتل،اود حاکم حکم. **فَإِذَا سَمِعَ ذٰلِكَ الشَّاهِدُ أَوْ رَآهُ وَسِعَهُ أَنْ يَشْهَدَ بِهِ** نو هرکله چې دا ګواه واوریدل.یا اوکتل.نود هغه لپاره جائز دی.چه هغه ګواهی ورکړي. **وَإِنْ لَمْ يُشْهَدْ عَلَيْهِ** اګرچه هغه په دې معامله باندې ګواه نه وی جوړ شوې.

**حل اللغة:** ① **یتحمل** -اوچتوی- ② **ضربین**-تثنیه د ضرب قسم- ③ **الموجب**-واجبونکې- ④ **بنفسه**-پخپله

**تشریح:-** د کومو څیزونو چې ګواه جوړیدلې شی.دهغې دوې (دوه) قسمونه دی.① یو هغه چې دهغې حکم پخپله ثابتیږي.په هغې کې د ګواه جوړولو اړتیا نه پیښیږي.لکه بیع، اقرار، غصب، قتل،اود حاکم حکم.نو هرکله چې ګواه یو مسموع (اوریدونکې) شئ واوریدلو. لکه بیع، اقرار،اود حاکم حکم.یا کوم مبصر (د کوم تعلق چې د کتلو سره وی) شئ اوکتلو.مثلاً غصب او قتل.نو ګواه لپاره صرف په اوریدلو یا صرف په کتلو ګواهی ورکول جائز دی.اګرچه دې ګواه نه وی جوړ کړې شوې.

**لِأَنَّهُ عَلِمَ مَا هُوَ الْمُوجِبُ بِنَفْسِهِ** دلیل دا دې چې ګواه ته هغه شئ معلوم شوې دې.کوم چې پخپله موجب دې. **وَهُوَ الرُّكْنُ فِي إِطْلَاقِ الْأَدَاءِ** او علم (خبریدل)،د ادائې شهادت په جائز کیدلوکې رکن دې. **قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾** الله تعالی فرمائیلی دی.چه سوا دهغه نه څوك په حق باندې ګواهی ورکوی.په داسې حال کې چې خلګ دې پیژنی.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې ګواه ته په اوریدلو یا په کتلو د هغه شئ علم شوې دې.کوم چې پخپله موجب دې.نو دده لپاره شهادت اداکول جائز کیږي.ځکه چې علم (معلومیدل)کوم چې د ادائې شهادت د جواز رکن دې.هغه

اوموندې شو.او علم د شهادت ادا کاوه د جواز رکن ځکه دې.چه الله تعالى فرمائيلي دى. ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾يعنى کوم خلګ چې د حق نه خبر وى د حق ګواهي ورکوى.د آيت نه معلومه شوه.چه د ګواهۍ لپاره علم (خبريدل) ضرورى دى.

وَقَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {إِذَا عَلِمْتَ مِثْلَ الشَّمْسِ فَاشْهَدْ وَإِلَّا فَدَعْ}[1] اونبى كريمﷺ فرمائيلي دى.کله چې ته دنمر پشان په هغې خبر شې.نو ګواهي ورکړه.ګنى پريږده.

حل اللغة: ① مثل -پشان-② الشمس-نمر-③ فاشهد-ګواهي ورکړه-④ فدع-پريږده

تشريح:- رسول اللهﷺ فرمائيلي دى. ﴿إذا علمت مثل الشمس فاشهدوا و إلا فدع﴾ يعنى کله چې ته لمر پشان پوهه شې.نو ګواهي ورکړه.ګنى پريږده.حاصل داچه کله چې يوکس ته د څه شي په اړه کې يقينى علم حاصل شي.نو دده لپاره ګواهي ورکول جائز دى.او که علم نه وى.نو ګواهي ورکول جائز نه دى.بهرحال ددې حديث نه معلومه شوه.چه د ګواهۍ لپاره د هغه شي نه خبريدل ضرورى دى.د کوم ګواهي چې ورکولې شي.

؟اعتراض:دلته کې يو اشکال دې.هغه داچه علامه مرغينانىؒ فرمائيلي دى.چه د ادائى شهادت د جواز لپاره علم (خبريدل) رکن دې.حالانکه روايت او درايت دواړه د علم په شرطيت باندې دلالت کوى.او په رکن کيدلو باندې دلالت نه کوى.په دې طور چې آيت کې ﴿وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ حال دې.او حال شرط وى.او په حديث کې لفظ د اذا کوم چې په علم باندې داخل دې.هغه دشرط لپاره موضوع دې؟

ځواب:ددې ځواب دادې.چه لفظ د رکن مجازاً استعمال شوې دې.ګنى د علامه مرغينانىؒ مراد په لفظ د رکن سره مراد شرط دې.او شرط په لفظ د رکن سره ځکه تعبير کړې شو.چه دا معلومه شى.چه شهادت ادا کاوه ته د علم سخت حاجت دې.

## په روښى قسم کښې د ګواهۍ اداکولو الفاظ

قَالَ وَيَقُولُ أَشْهَدُ أَنَّهُ بَاعَ ابو الحسين قدورىؒ فرمائى.چه دا ګواه به داسې وائى.چه زه ګواهي ورکوم.چه ده خرڅ کړې دې. وَلَا يَقُولُ أَشْهَدَنِي لِأَنَّهُ كَذِبٌ او داسې به نه وائى.چه ده زه ګواه جوړ کړې يم.ځکه چې دا دروغ دى.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوکس د بل سړى نه داتې خبره واوريدله.کومه چې د مسموعاتو د قبيلې څخه ده.مثلاً خرڅول، اخستل، يا اقرار کول.او چا ده لره په دې باندې ګواه هم جوړ نکړو.خود ګواهۍ ارتيا پيښ شو.نودا ګواه (اوريدونکې) به د ګواهۍ ور کاوه په وخت داسې وائى.چه زه ګواهي ورکوم.چه ده خرڅ کړې دې.يا ده اخستې دې.يا ئې د فلانى لپاره خپل خان باندې د دومره رقم اقرار کړې دى.او داسې به نه وائى.چه ده زه ګواه جوړ کړې يم.ځکه چې دا بالکل دروغ دى.او دروغ ځکه دى.چه ده لره هيڅ چا ګواه نه دې جوړ کړې.بلکه د مدعى عليه کلام اوريدلو سره دې پخپله ګواه جوړشوې دې.

وَلَوْ سَمِعَ مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ لَا يَجُوزُ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ،اوکه ده د پردې شاته اوريدلى وى.نو دده لپاره ګواهي ورکول جائز نه دى. وَلَوْ فَسَّرَ لِلْقَاضِي لَا يَقْبَلُهُ اوکه ده قاضى ته تفسير اوکړو.نو قاضى به دا نه قبلوى. لِأَنَّ النَّغْمَةَ تُشْبِهُ النَّغْمَةَ فَلَمْ يَحْصُلِ الْعِلْمُ ځکه چې يو آواز د بل آواز مشابه وى.نو علم به نه حاصليږى.+

حل اللغة: ① سمع- واورى-② الحجاب-پرده-③ النغمة-سندره-④ تشبه-مشابه کيږى

تشريح:- اوکه يو کس د پردې شاته اوريدلى وى.مثلاً ده ته آواز راغئ.چه په کور کې دننه يوکس اووئيل.چه ماخرڅ کړو.او دوهم کس اووئيل.ما واخستلو.نود ګواه لپاره جائز نه دى.چه هغه په يو خاص سړى باندې د بائع يا مشترى کيدلو ګواهي ورکړى. اوکه ده د قاضى په وړاندې ددې خبرې وضاحت اوکړو.چه ما د پردې شاته

(1)من حديث ابن عباس أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (٢٥٢\١٠ _ رقم ٢٠٥٣٧) والحاكم فى المستدرک فى كتاب الأحكام)_



اوريدلى وو.او ګواهي مې ورکړه. نو قاضى به دده ګواهي نه قبلوى.ځکه چې اوازونه خپلو کې د يو بل مشابه وى.يعنى صرف په آواز اوريدلو سره دا توپير نشى کيدلې.چه ويونکې څوک دې.بلکه تکلم (خبرې کول) مشتبه کيږى.او مشتبه شى د علم فائده نه ورکوى.حالانکه د شهادت ادا کاوه لپاره ګواه ته د هغه د شي علم کيدل ضرورى دې.د کوم په اړه کې چې ـې ګواهي ورکوى.نو هرکله چې د پردې شاته اوريدلو سره يقينى علم نه حاصليږى.نود پردې شاته اوريدلو سره به ګواهي ورکول هم جائز نه وى.

إِلَّا إِذَا كَانَ دَخَلَ الْبَيْتَ وَعَلِمَ أَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ أَحَدٌ سِوَاهُ خو کله چې ګواه کور ته داخل شوې وى.او ګواه ته دا معلومه شوه.چه کور ته داخليدونکې د مدعى عليه نه سوا بل هيڅ څوک نشته. ثُمَّ جَلَسَ عَلَى الْبَابِ وَلَيْسَ فِي الْبَيْتِ مَسْلَكٌ غَيْرُهُ بيا ګواه په دروازه کې کيناستلو.او کورته د تلو ددې دروازې نه علاوه بله کومه لاره نشته. فَسَمِعَ إِقْرَارَ الدَّاخِلِ وَلَا يَرَاهُ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ بيا ګواه د دننه سړى اقرار واوريدلو.حالانکه ګواه هغه نه ګورى.نو ګواه لپاره ددې ګواهي ورکول جائز دى. لِأَنَّهُ حَصَلَ الْعِلْمُ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ ځکه چې په دې صورت کې علم حاصل شوې دې.

حل اللغة: ① البيت -کور-الباب-دروازه-مسلک-لاره-الداخل-دننه

تشريح:- خو که ګواه په اطاق کې داخل شو.او هغه ته معلومه شوه.چه په اطاق کې د مدعى عليه نه سوا بل څوک نشته.بيا ګواه پخپله د کمرې په دروازه کې کيناستلو.او په دې اطاق کې ددې دروازې نه علاوه د تلو راتلو بله هيڅ يوه لاره نشته.بيا ګواه د دننه سړى (مدعى عليه) اقرار واوريدلو.حالانکه ګواه دې نه ګورى.مثلاً هغه د دننه نه اقرار اوکړو.چه ما خپل غلام (خالد) د حامد بن شاهد په لاس باندې خرڅ کړو.يا هغه دننه د حامد لپاره د يو زر درهمو اقرار اوکړو.او ګواهانو هغه کتلې نه دې.نو بيا هم ګواه ته ددې ګواهي ورکول جائز دى.ځکه چې په دې صورت کې ګواه ته يقينى علم حاصل شوې دې.او هرکله چې ګواه ته يقينى علم حاصل شو.نود ګواهۍ شرط موجود کيدلو په وجه دده ګواهي به هم قبلولې شي.

## دوهم قسم د ګواهۍ پخپله ثابتدل

وَمِنْهُ مَا لَا يَثْبُتُ الْحُكْمُ فِيهِ بِنَفْسِهِ او په دې کې يو ډول هغه دې.چه د هغې حکم پخپله ثابت نه وى. مِثْلُ الشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ لکه په ګواهۍ باندې ګواهي ورکول. فَإِذَا سَمِعَ شَاهِدًا يَشْهَدُ بِشَيْءٍ لَمْ يَجُزْ لَهُ نو کله چې يوکس د يو ګواه نه واوريدل.چه هغه د يوڅيز ګواهي ورکوى.نو دده لپاره جائز نه دى. أَنْ يَشْهَدَ عَلَى شَهَادَتِهِ إِلَّا أَنْ يُشْهِدَ عَلَيْهَا چې دې دهغه په ګواهۍ باندې ګواهي ورکړى.مګر داچه هغه دې پخپله ګواهۍ باندې ګواه جوړ کړى.

تشريح:- په ذکرشوى قسمونو کې دوهم ډول هغه دې.چه دهغې حکم پخپله نه ثابتيږى.بلکه په هغې کې د ګواه جوړولو ارتيا پيښيږى.لکه،،شهادة على الشهادة،،چه ترکومه پورې اصلى ګواه پخپله ګواهۍ باندې ګواه جوړ نکړى.تر هغه وخته پورې شهود فرع لپاره د ګواهۍ ور کاوه حکم نه ثابتيږى.نوکه يو کس مثلاً زيد دګواه مثلاً د بکر نه د قاضى د مجلس نه علاوه کې واوريدل.چه بکر ددې خبرې ګواهي ورکوى.چه د خالد په حامد باندې يو زر درهم پور دى.نو شاهدفرع يعنى زيد لپاره دا جائز نه دى.چه دې د خالد په حامد باندې د يو زر درهمو قرضه کيدلو ګواهي ورکړى.البته که شاهد اصل يعنى بکر دې پخپله ګواهۍ باندې ګواه جوړ کړى.نو ددې شاهد فرع يعنى زيد لپاره ګواهي ورکول جائز نه دى.

لِأَنَّ الشَّهَادَةَ غَيْرُ مُوجِبَةٍ بِنَفْسِهَا،دليل دا دې چې شهادت پخپله موجب نه دې. وَإِنَّمَا تَصِيرُ مُوجِبَةً بِالنَّقْلِ إِلَى مَجْلِسِ الْقَضَاءِ بلکه هغه د قاضى مجلس اړخ ته په منتقل کاوه سره موجب کيږى. فَلَا بُدَّ مِنَ الْإِنَابَةِ وَالتَّحْمِيلِ نو ضرورى ده.چه (اصل ګواه) دې خپل نائب جوړ کړى.او په ده باندې د ګواهۍ بوج واچوى. وَلَمْ يُوجَدْ حالانکه په دې کې هيڅ نه دى موندلى شوى.

حل اللغة: ① تصير -ګرځى-② موجبة-واجبونکې-③ الانابة-رجوع کول-④ التحميل-بوج اچول

تشریح:- ددې دلیل دادې چه د اصول شهادت پخپله حکم نه واجبوی.نود بکر صرف ګواه کیدلو سره حامد باندې پور نه واجبیږی.بلکه د اصول (اصل ګواهانو) شهادت هغه وخت حکم واجبوی.کله چې اصول خپل شهادت د قاضی مجلس ته منتقل کړی.بهرحال د اصل شهادت پخپله موجب د حکم نه دې.نوهر کله چې د اصول شهادت پخپله موجب د حکم نه دې.بلکه موجب د حکم جوړولو لپاره ددې د قاضی په مجلس کې نقل کول ضروری دی.نود اصول (اصل ګواهانو) لپاره ضروری دی.چه دوی په فروع باندې د شهادت بوج واچوی.اود شهادت په ادا کاوه کې دوی خپل نائب مقرر کړی.چه فروع د اصول شهادت د قاضی په مجلس کې نقل کړی.

٢ او ددې وجه داده.چه د فروع ګواهی ورکول د اصول په حق کې تصرف کول دی.په دې طور چې د مشهود علیه (مدعی علیه) خلاف قول نافذ کیدلو کې اصول ته ولایت حاصل وو.یعنی اصول ته دا ولایت حاصل وو.چه دوی خپل قول (ګواهی) د مشهود علیه خلاف نافذ کړی.خو کله چې فروع د اصول د اړخه ګواهی نقل کړله.نو ګویا فروع د اصول هغه ولایت زائل کړو.کوم ولایت چې د اصول لپاره ثابت وو.اودا خبره منلې شوې ده.چه چا له د چا ولایت او حق د هغه د رضامندئ نه بغیر زائل کول جائز نه دی.نود شهود فرع د شهادت لپاره به هم د اصول رضامندی ضروری وی.اود اصول رضامندی داده.چه اصول فروع د خپل اړخه شاهد او نائب مقرر کړی.نود متن په فرض شوې مسئله کې د اصول د اړخه په فروع باندې د شهادت بوج اچول (شاهد جوړول) اوموندې شو.اونه نائب مقرر کول اوموندې شو.په دې وجه د فروع صرف د اصول ګواهی اوریدلو سره ګواهی ورکول جائز نه ده

> وَكَذَا الرَّسْمِعَهُ يُشْهِدُ الشَّاهِدَ عَلَى شَهَادَتِهِ او دغه ډول که یوکس د اصل ګواه نه واوریدل.چه شاهد بالفرفع پخپله ګواهی باندې ګواه جوړوی. لَمْ يَسَعْ لِلسَّامِعِ أَنْ يَشْهَدَ نود اوریدونکې لپاره ګواهی ورکول جائز نه دی. لِأَنَّهُ مَا حَمَّلَهُ چور خکه چې اصل ګواه په سامع باندې د ګواهئ بوج نه دې اچولې. وَإِنَّمَا حَمَّلَ غَيْرَهُ بلکه دده نه په علاوه باندې ئې ایخودې دی.

تشریح:- دغه ډول که یوکس حقیقی او اصلی ګواهی واوریدله.چه هغه پخپلې ګواهئ باندې څوک ګواه جوړوی.نو سامع (اوریدونکی) له د اصلی ګواه په ګواهئ باندې ګواهی ورکول جائز نه دی.مثلاً حامد واوریدل.چې خالد (اصل ګواه) پخپله ګواهئ باندې شاهد ګواه جوړوی.نو سامع یعنی حامد ته دا اختیار نشته.چه هغه د خالد (اصلی ګواه) په ګواهئ باندې ګواهی ورکړی.خکه چې اصلی ګواه د خپلې ګواهئ بوج په دې اوریدونکی حامد باندې نه دې اچولې.بلکه دده نه علاوه په شاهد باندې ئې اچولې دې.البته شاهد کوم چې خالد پخپله ګواهئ باندې ګواه کړې دې.هغه ګواهی ورکولې شی.خو حامد ګواهی نشی ورکولې.

## د خپل تحریر مضمون په کتلو باندې ګواهی ورکول

> وَلَا يَحِلُّ لِلشَّاهِدِ إِذَا رَأَى خَطَّهُ أَنْ يَشْهَدَ اوګواه له دا حلال نه دی.چه هغه خپل خط اوګوری.او ګواهی ورکړی. إِلَّا أَنْ يَتَذَكَّرَ الشَّهَادَةَ مګر داچه هغه ته ګواهی یاده شی. لِأَنَّ الْخَطَّ يُشْبِهُ الْخَطَّ فَلَمْ يَحْصُلِ الْعِلْمُ. خکه چې یو تحریر د بل تحریر مشابه وی.نو علم به حاصل نشی. قِيلَ هَذَا عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله وئیلې شوی دی.چه دا د ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې دی. وَعِنْدَهُمَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ [1] اود صاحبینو رحمهما الله په نیز دده ګواهی ورکول حلال دی.

تشریح:- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی.که ګواه هم په دستاویز (تحریر) کې د خپلې ګواهئ تحریر اوکتلو.خود کومې واقعې سره چې د ګواهئ تعلق دی.نه هغه واقعه یاده شوه.اونه ګواهی ورکول وریاد شو.نو ددې ګواهئ لپاره صرف په تحریر کتلو سره ګواهی ورکول جائز نه دی.خکه چې یو تحریر د بل تحریر مشابه وی.اوهر کله چې یو تحریر د بل تحریر مشابه وی.نودا مشتبه شو.چه آیا دا تحریر هم ددې ګواه دې.یا د بل چا دې.او مشتبه شئ د علم او یقین فائده نه ورکوی.نو په دې تحریر سره به علم نه حاصلیږی.حالانکه د شهادت لپاره د هغه واقعې علم

[1] القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى الدرالمختار(٤١١٧\٤) وفتح القدير(٤٦٥\٦) والبحر(٧٢\٧) نقلاً عن القول الراجح (١٣٣\٢)-



ضروری دې.د کومې واقعې متعلق چې شهادت ورکولې شی.نو هر کله چې د شهادت ور کاوه لپاره د مشهود به ضروری دی.او په ذکر شوی تحریر سره علم نه حاصلیږی.نود ذکر شوې تحریر په کتلو باندې به ګواهی ورکول هم جائز نه وی.

خبریدل ابو الحسین قدوری رحمه الله په دې مسئله کې د هیڅ چا اختلاف نه دې ذکر کړې.البته فقیه ابواللیث او شمس الائمه رحمهما الله وغیره اختلاف ذکر کړې دې.دې حضراتو فرمائیلی دی.چه دتحریر په کتلو سره د ګواهئ ور کاوه عدم جوازد حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې.خکه چې حضرت امام صاحب رحمه الله په تحریر باندې عمل نه کوی.بلکه د سماع د وخت نه واخله د شهادت ادا کاوه د وخت پورې ددې یاد ساتل شرط ګرځوی.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز دتحریر په کتلو سره شهادت ورکول جائز دی.

> وَقِيلَ هَذَا بِالِاتِّفَاقِ، وَإِنَّمَا الْخِلَافُ فِيمَا او وئیلی شوی دی.چه دا بالاتفاق دی.او اختلاف په هغه صورت کې دې. إِذَا وَجَدَ الْقَاضِي شَهَادَتَهُ فِي دِيوَانِهِ أَوْ قَضِيَّتَهُ کله چې قاضی د هغه ګواهی پخپل فائل کې بیاموی. یا پخپله حکم نامه کې اوموی.

حل اللغة: ① دیوان -فائل-② القضية-حکمنامه-③ القمطرة-فائل-④ الختم-مهر

تشریح:- او بعض حضراتو فرمائیلی دی.چه د تحریر په کتلو سره د شهادت عدم جواز متفق علیه دې.او اختلاف په هغه صورت کې دې.کله چې قاضی پخپل فائل کې اوکتل.چه ګواهانو دده په عدالت کې ګواهی ورکړې ده.خو حکم نه دی ورکړې شوی.بیا مشهودله (مدعی) که د قاضی نه د حکم درخواست اوکړو.خو قاضی ته ددې واقعې متعلق خپلې مخې ته د ګواهانو ګواهی اوروړل یاد نشو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به ددې شهادت په بنا (بنیاد) باندې حکم ورکول جائز نه وی.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.اود امام احمد رحمه الله نه هم یو روایت دادې.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز کله چې قاضی د ګواهانو ګواهی پخپل فائل او رجسټر کې د خپل مهر لاندې اوکتله.نو ددې ګواهئ په بنا (بنیاد) باندې د قاضی فیصله ورکول جائز دی.امام مالک رحمه الله هم ددې قائل دی.اوهم دا یو روایت د امام احمد رحمه الله دې.دغه ډول که قاضی پخپله حکم کې د ګواهانو ګواهی هم لیکلې وه.خکه نې ګواهی هم اوکتله.خو قاضی ته خپل حکم ورکول یاد نشو.نود حضرت امام صاحب رحمه الله په نیز به دا حکم جائز نه وی.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز جائز دی.

٣ د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل وړاندې تیر شوې دې.چه یو تحریر د بل تحریر مشابه وی.خکه به یقینی علم نه حاصلیږی.حالانکه د شهادت لپاره علم (خبریدل) شرط دی.

> لِأَنَّ مَا يَكُونُ فِي قِمَطْرِهِ فَهُوَ تَحْتَ خَتْمِهِ دلیل دا دې چې کوم شئ دده په فائل کې دی.هغه دده دمهر لاندې دی. يُؤْمَنُ عَلَيْهِ مِنَ الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ په دې کې د کمې زیاتی نه امن دې. فَحَصَلَ لَهُ الْعِلْمُ بِذَلِكَ نو قاضی لپاره به په دې سره علم حاصلیږی.

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه کوم شئ د قاضی په بیګ او دده په فائل کې موجود دې.هغه دده د مهر لاندې دی.او کوم شئ چې دده د مهر لاندې وی.هغه د کمې زیاتی نه بالکل مامون او محفوظ وی. نو هر کله چې هغه شهادت کوم چې دده په فائل یا دده په حکم نامه کې دې.د کمې زیاتی نه محفوظ دې.نو ددې په وجه قاضی لپاره د شهادت علم حاصلیږی.اوهر کله چې علم حاصل شو.نود قاضی لپاره به حکم ورکول هم جائز وی.

> وَلَا كَذَلِكَ الشَّهَادَةُ فِي الصَّكِّ او دا خبره په هغه ګواهئ کې نه ده.کومه چې په تحریر کې ده. لِأَنَّهُ فِي يَدِ غَيْرِهِ خکه چې هغه د بل سړی په قبضه کې دې.

تشریح:- اوکه ګواه خپله ګواهی په یو تحریر کې اوکتله.او هغه ته دا علم هم اوشو.چه دا دده تحریر دې.نو ده له صرف د خپل تحریر په کتلو سره ګواهی ورکول جائز نه دی.خکه چې دا تحریر د قاضی نه د علاوه په لاس کې د کیدلو په وجه د کمې زیاتی نه غیرمحفوظ دې.او هر کله چې دا تحریر غیر محفوظ دې.نو په دې سره به علم نه حاصلیږی.اوهر کله چې علم حاصل نشو.نو ددې په کتلو به ګواهی ورکول هم جائز نه وی.

وَعَلٰى هٰذَا إِذَا تَذَكَّرَ الْمَجْلِسَ الَّذِي كَانَ فِيهِ الشَّهَادَةُ او هم په دې اختلاف کله چې هغه مجلس یاد شي په کوم کې چې
ګواهي وه. أَوْ أَخْبَرَهُ قَوْمٌ مِمَّنْ يَثِقُ بِهِ أَنَّا شَهِدْنَا نَحْنُ وَأَنْتَ یا ده داسې قوم خبر ورکړو. چه په هغوی باندې ده اعتماد
دې چه موږ او ته ګواه شوی وو.

حل اللغة: ① تذكر -وریاد شي-② اخبر -خبرورکړي -③ يثق -اعتماد کیداې شي-④ انا شهدنا -موږ ګواهي ورکړه

تشریح:- هم دا اختلاف هغه وخت دې. کله چې ګواه ته هغه مجلس خو وریاد شو. په کوم کې نې چې ګواهي ورکړه وه. خو واقعه وریاده نشوه. یا داسې قوم ده ته خبر ورکړو. په کوم چې ده ته اعتماد دې. چه موږ او تا ګواهي ورکړې وه. خود ګواهۍ متعلق واقعه وریاده نشوه. نو بعض حضرات فرمائي. چه په دې دواړو صورتونوکې بالاتفاق ګواهي ورکول جائز نه دی. او بعض فرمائي. چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز نه ده. اود صاحبینو رحمهما الله په نیز جائز دی.

### د مشاهدې نه بغیره کومو څیزونو ګواهي ور کولاې شي؟

قَالَ وَلَا يَجُوزُ لِلشَّاهِدِ أَنْ يَشْهَدَ بِشَيْءٍ لَمْ يُعَايِنْهُ د ګواه لپاره دداسې شئ ګواهي ورکول جائز نه دی. د کوم چې ده مشاهده نه ده کړې. إِلَّا النَّسَبَ وَالْمَوْتَ وَالنِّكَاحَ وَالدُّخُولَ وَوِلَايَةَ الْقَاضِي سوا د نسب، مرګ، نکاح، دخول، اود قاضي د ولایت نه. فَإِنَّهُ يَسَعُهُ أَنْ يَشْهَدَ بِهٰذِهِ الْأَشْيَاءِ إِذَا أَخْبَرَهُ بِهَا مَنْ يَثِقُ بِهِ ده لپاره ددې څیزونو ګواهي جائز نه ده. په دې شرط چې ده لره په دې څیزونو باندې کوم ثقه سړي خبر ورکړې وی. وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ اودا استحسان دې.

حل اللغة: ① لم يعاينه -چه لیدلې نې نه وی-② يسع -جائزدی-③ اخبر -خبر ورکړي-④ يثق به -قابل اعتماد

تشریح:- مسئله: د ګواه لپاره دداسې څیزونو په اړه کې ګواهي ورکول د کوم چې ده مشاهده نه وی کړې. جائز نه دي. البته پنځه شیان داسې دی. چه د هغې په اړه کې د مشاهدې نه بغیر صرف د ثقه خلګو نه په اوریدلو سره ګواهي ورکول جائز دی. ① نسب ② مرګ ③ نکاح ④ دخول ⑤ ولایت د قاضي.

د نسب نه مراد دادې. چه مثلاً حامد د خلګو نه واوریدل. چه شاهد د فلانی زوې دې. خود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خبر ورکونکې جماعت (ډله) داسې وی. چه ددوی په دروغو باندې اتفاق د عقل نه لرې وی. اود صاحبینو رحمهما الله په نیز دوې (دوه) عادل سړي کافي دی. نوکه حامد نسب داسې واوریدلو. نو ده لپاره دا ګواهي ورکول حلال دی. چه شاهد د فلانی زوې دې. د مرګ صورت دادې. چه ګواه مثلاً حامد د خلګو نه واوریدل. چه فلاح مړشوې دې. یا نې خلګ اوکتل. چه ده سره د تکفین او تدفین د سړو پشان معامله کوی. نود ګواه لپاره ده دمرګ ګواهي ورکول جائز دی. اګرچه ددې مشاهده نې نه وی کړې. د نکاح صورت دادې. چه ګواه د خلګو نه دا واوریدل. چه فلانی سړي د فلانۍ ښځې سره نکاح کړې ده. نو ګوه اګرچه د نکاح مشاهده نه ده کړې. خوده له د نکاح ګواهي ورکول جائز دی. اود دخول صورت دادې. چه ګواه د خلګو نه واوریدل. چه فلانۍ ښځه د فلانی سړي ښځه (بی بی) ده. او هغه ددې سره دخول کړې دې. اګرچه ده د عقد نکاح اود دخول مشاهده نه وی کړې. اود قاضي د ولایت صورت دادې. چه یو سړي د خلګو نه واوریدل. چه فلانې ددې ښار قاضي دې. او هغه نې اوکتلو. چه په خلګ وکې فیصلې جاري کوی. نو ددې سړي لپاره دا ګواهي ورکول جائز دی. چه فلانې سړې د فلانی ښار قاضي دې. اګرچه د امام المسلمین د اړخه ده د قاضي جوړولو مشاهده نه وی کړې. بهرحال ددې پنځه څیزونو په اړه کې د ثقه خلګو نه اوریدلو سره ګواهي ورکول جائز دی. اګرچه ددې مشاهده نې نه وی کړې. خو دا حکم استحساني دې.

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تَجُوزَ او قیاس دادې. چه جائز نه وی. لِأَنَّ الشَّهَادَةَ مُشْتَقَّةٌ مِنَ الْمُشَاهَدَةِ ځکه چې شهادت د مشاهده نه مشتق دې. وَذٰلِكَ بِالْعِلْمِ وَلَمْ يَحْصُلْ او مشاهده په معاینه سره کیږي. اودا حاصل نشو. فَصَارَ كَالْبَيْعِ نودا د بیع مثل شو.

تشریح:- اود قیاس تقاضا داده. چه صرف په اوریدلو سره ګواهي ورکول جائز نه وی. ځکه چې شهادت د مشاهدې نه مشتق دې. او مشاهده په کتلو سره کیږي. په اوریدلو سره نه کیږي. حالانکه په ذکر شوی پنځه څیزونوکې معاینه او کتل اونه موندې شو. نودا شیان د بیع پشان شو. یعنی لکه ځنګه چې صرف په اوریدلو سره د کتلو نه بغیر د بیع



شهادت ورکول جائز نه دی. دغه ډول د قیاس د مقتضاء مطابق صرف په اوریدلو سره ددې څیزونو ګواهي ورکول هم ناجائز دی.

وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّ هٰذِهِ أُمُورٌ تَخْتَصُّ بِمُعَايَنَةِ أَسْبَابِهَا خَوَاصٌّ مِنَ النَّاسِ، اود استحسان وجه داده. چه دا امور داسې دی. چه ددې داسبابو د معاینه سره خاص خاص خلګ مختص دی. وَيَتَعَلَّقُ بِهَا أَحْكَامٌ تَبْقٰى عَلٰى انْقِضَاءِ الْقُرُونِ، او په دې امورو سره داسې احکام متعلق کیږي. کوم چې د مودو تیریدو باوجود پاته پاتې کیږي. فَلَوْ لَمْ تُقْبَلْ فِيهَا الشَّهَادَةُ بِالتَّسَامُعِ أَدّٰى إِلَى الْحَرَجِ وَتَعْطِيلِ الْأَحْكَامِ نو که په دې امورو کې د بهر په اوریدلو باندې ګواهي قبول نه وی. نو حرج به لاحق شي. او احکام به معطل شي.

حل اللغة: ① تختص -خاص کیږي-② معاينة -مشاهده-③ القرون -جمع د قرن، زمانه-④ التسامع -اوریدل\ اورول

تشریح:- داستحسان وجه داده. چه ذکر شوی پنځه شیان داسې دی. چه ددې د اسبابو معائنه خاص. خاص خلګ کوی. په هغې باندې عام خلګ نه خبریږي. حالانکه ددې څیزونو سره داسې احکام متعلق کیږي. کوم چې د مودو تیریدلو باوجود هم پاته کیږي. مثلاً نسب، مرګ، او نکاح سره میراث متعلق دې. او دخول سره کمال مهر، عدت، ثبوت، احصان، او نسب متعلق دی. یعنی که د سړي ښځې سره دخول متحقق شي. نو په سړي به پوره مهر واجب وی. د طلاق په صورت کې به په ښځه عدت واجب وی. ښځه او سړي به دواړه محصن شمارلې کیږي. بچې پیدا شو. نود هغه نسب به ثابت وی. نوکه په دې څیزونو کې صرف په اوریدلو باندې ګواهي قبول نه وی. نو حرج به لاحق شي. او ډیر احکام به معطل پاتې شي. مثلاً پنځوس کاله روسته یو سړي دعوه اوکړله. چه دا شئ زما د پلار میراث دې. یا ښځې په مړي باندې د خپل مهر دعوه اوکړله. حالانکه نه ددې سړي د ولادت د مشاهدې ګواه موجود دې. او نه ددې ښځې ددې مړي سره د نکاح د مشاهدې ګواهان موجود دی. اوس که په دې دواړه صورتونوکې د هغه حضراتو ګواهي قبول نشي. چاچه نه د مدعی ولادت کتلې دې. اونه نې ددې ښځې د نکاح مشاهده کړې ده. بلکه صرف د خلګو نه نې اوریدلي دی. نو په ړومبی صورت کې به د میراث او په دوهم صورت کې به د مهر حکم بې کاره پاتې شي. د میراث او مهر مدعیان به په حرج کې اخته شي. اود ټولو نه لوې دلیل دادې. چه موږ ددې خبرې شهادت ورکوو. چه حضرت علی رضي الله عنه د ابوطالب زوې دې. اګرچه موږ ددوی د ولادت مشاهده نه ده کړې. او موږ ددې خبرې شاهدان یو. چه واړه صحابه رضي الله عنهم وفات شوی دی. اګرچه موږ په دوی کې دهیڅ چا د مرګ مشاهده نه ده کړې. ددې مثال نه معلومیږي. چه په ذکر شوی پنځه څیزونوکې صرف په اوریدلو سره ګواهي ورکول جائز دی.

بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ يَسْمَعُهُ كُلُّ أَحَدٍ په خلاف د بیع. ځکه چې دا هر سړې اوریدلې شي.

تشریح:- ددې په خلاف د بیع د ایجاب او قبول هر سړې معاینه کوی. یعنی هر سړې ګوري. چه فلانی د فلانی سره بیع کړې ده. د یو خاص سړي د کتلو هیڅ خصوصیت نشته. په دې وجه د مشاهدې نه بغیر صرف په اوریدلو سره د بیع ګواهي ورکول جائز نه دی. او نسب وغیره د ذکر شوی پنځه څیزونو معائنه او مشاهده چونکه خاص خاص خلګو سره مختص وی. په دې وجه به په دې کې صرف په اوریدو باندې اکتفاء کولې شي. چه حرج لاحق نشي.

وَإِنَّمَا يَجُوزُ لِلشَّاهِدِ أَنْ يَشْهَدَ بِالْاِشْتِهَارِ او په اوریدلو باندې ګواه له ګواهي ورکول اشتهار سره جائز دې. وَذٰلِكَ بِالتَّوَاتُرِ أَوْ بِإِخْبَارِ مَنْ يَثِقُ بِهِ كَمَا قَالَ فِي الْكِتَابِ اودا اشتهار به په تواتر سره حاصلیږي. یاد ثقه سړي په خبر ور کاوه سره. لکه ځنګه چې په قدوري کې وئیلی شوی دی.

حل اللغة: ① الاشتهار -شهرت ورکول-② التواتر -متواتر\ شهرت-③ اخبار -خبرورکول-④ يثق به-

تشریح:- دا عبارت د یو سوال ځواب دې. سوال دادې. چه په ذکرشوی پنځه څیزونوکې صرف په اوریدلو سره د ګواهۍ ورکول جائز کیدل د کتاب الله مخالف دی. ځکه چې کتاب الله یعنی ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ کې

شهادت لپاره علم یعني د مشهود په خبریدل شرط گرځولي شوي دي. حالانکه د معاینه او مشاهده نه بغیر علم نه حاصلیږي. نو په ذکر شوي ځیزونو کي صرف په اوریدلو سره بغیر د معائنه نه استحساناً گواهي جائز گرځول، د کتاب الله خلاف دي. چه سراسر غلط دي؟

خواب: ددې خواب دادي. چه علم څنگه په مشاهده سره حاصلیږي. دغه ډول د یوې خبرې په مشهورتیا سره هم حاصلیږي. یعني که یوکس یوه خبره داسي واوریدله. کومه چي په عامو خلگو کي مشهوره وي. نو په دې مشهورتیا سره هم اوریدونکي ته علم حاصلیږي. او دا اشتهار به یا په تواتر سره وي. یعني خبر ورکونکې به دومره لوی جماعت وي. چه ددوی به په دروغو باندې اتفاق د عقل نه لرې وي. یا به دا اشتهار د ثقه سړي په خبر ورکاوه سره وي. لکه څنگه چي په قدوري کي ذکر دي. البته د تواتر په صورت کي به اشتهار حقیقي وي. اود ثقه سړي خبر ورکاوه په صورت کي به اشتهار حکمي وي. حاصل دا شو. چه په اوریدلو باندې د گواه لپاره گواهي ورکول هغه وخت جائز دي. کله چي دا اوریدل په اشتهار سره وي. یعني هغه خبره مشتهر شوې وي. یا که اشتهار حقیقي وي او که حکمي وي.

وَيُشْتَرَطُ أَنْ يُخْبِرَهُ رَجُلَانِ عَدْلَانِ او شرط دادي. چه گواه ته دوې (دوه) عادل سړي خبر ورکړي. أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ یا یو سړې او دوې (دوه) ښځي عادلي خبر ورکړي. لِيَحْصُلَ لَهُ نَوْعُ عِلْمٍ چي دده لپاره یو ډول علم حاصل شي.

تشریح: - ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي. چه د ثقه سړي نه په اوریدلو سره په ذکر شوي پنځه ځیزونو کي گواهي ورکول جائز دي. خود خبر ورکونکو ثقه خلگو په سلسله کي ئې هیڅ عدد نه دې ذکر کړې. البته علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. چه عدد شرط دې. اود صاحبینو ﷫ په نیز چي دوې (دوه) عادل سړي خبر ورکړي. یا یو عادل سړې او دوې (دوه) عادلي ښځي خبر ورکړي. نو ددوی نه په اوریدلو سره گواهي ورکول جائز ده. اودا شرط ځکه دې. چه گواه ته د مشهود به په اړه کي یو ډول علم حاصل شي. اود حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز صرف اشتهار حقیقي معتبر دې. یعني د گواه لپاره په اوریدلو سره گواهي ورکول هغه وخت جائز ده. کله چي ده د عامو خلگو نه اوریدلي وي. ددوی په نیز د دوې (دوه) عادل سړو نه اوریدل د گواهۍ ورکاوه لپاره کافي نه دي.

وَقِيلَ فِي الْمَوْتِ يُكْتَفَى بِإِخْبَارِ وَاحِدٍ أَوْ وَاحِدَةٍ او وئیلي شوي دي. چه د مرگ په گواهۍ کي د یو سړي یاد یوې ښځي په خبر ورکاوه باندې اکتفاء کولي شي. لِأَنَّهُ قَلَّمَا يُشَاهِدُ غَيْرُ الْوَاحِدِ ځکه چي ډیر کم د یو سړي نه علاوه د مړي د حال مشاهده کوي. إِذِ الْإِنْسَانُ يَهَابُهُ وَيَكْرَهُهُ فَيَكُونُ فِي اشْتِرَاطِ الْعَدَدِ بَعْضُ الْحَرَجِ، ځکه چي سړې په مرگ سره هیبت اوکراهت کوي. نود عدد په شرط لگولو کي به حرج (او تنگي) وي. وَلَا كَذَلِكَ النَّسَبُ وَالنِّكَاحُ او نسب او نکاح داسي نه دي.

حل اللغة: ① یهاب - ویرېږي - ② یکره - بد گڼي - ③ الحرج - تکلیف - ④ یشاهد - مشاهده کوي

تشریح: - بعض حضرات فرمائي. چه د مرگ گواهي ورکاوه لپاره د یو عادل سړي یاد یو عادل ښځي نه اوریدل هم کافي دي.

دلیل دادي. چه د مړي نه انسان یریږي هم. او کراهت هم کوي. په دې وجه دده حال مشاهده کونکي د یو سړي نه علاوه ډیر کم وي. یعني ډیرکم داسي کیږي. چه دوې (دوه) څلور سړي د مرگ مشاهده کوي. بلکه ددې نه د کراهت او هیبت په وجه اِکا دکا (یونیم سړې) ددې مشاهده کوي. نو په داسي صورت کي د مرگ خبر ورکاوه لپاره د دوې (دوه) عادل سړو یاد یو سړي اود دوې (دوه) ښځو شرط لگول به مفضي الی الحرج وي. او په شریعت د اسلام کي حرج لرې کړې شوي دې. په دې وجه د مرگ خبر ورکاوه لپاره د یو عادل سړي یا د یو عادل ښځي کیدل هم کافي دي. ددې په خلاف نسب، نکاح، او ولایت د قاضي دې. چه دا شیان د جماعت په منځ کي متحقق کیږي. چه نکاح خو د دوې (دوه) کسانو د شهادت نه بغیر نه متحقق کیږي. اود ولادت په وخت په عامه توگه (عام طور) باندې ډیر خلگ موجود وي. او امام المسلمین چي کله چاته د قضاء عهده ورسپاري. هغه وخت هم په عامه



توگه (عام طور) باندې د مسلمانانو لوئې جماعت موجود وي. نو په مرگ او پاته ځیزونو کي ددې توپیر په وجه د مرگ خبر ورکاوه لپاره د عدد شرط نه دې لگولي شوې. اود پاته ځیزونو خبر ورکاوه لپاره عدد شرط گرځولي شوي دې.

وَيَنْبَغِي أَنْ يُطْلِقَ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ او مناسب دي. چه د شهادت اداکول مطلق اوساتي. او ددې تفسیر اونکړي. أَمَّا إِذَا فَسَّرَ لِلْقَاضِي أَنَّهُ يَشْهَدُ بِالتَّسَامُعِ لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُ خو که ده د قاضي په وړاندې تفسیر اوکړو. چه هغه په اوریدلو سره گواهي ورکوي. نو قاضي به د هغه گواهي نه قبلوي.

حل اللغة: ① یطلق - چه مطلق ادا کړي - ② یفسر - تفسیربیان کړي - ③ التسامع - اورول - ④ الاداء - ادا کول

تشریح: - علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. چه د کومو ځیزونو په اوریدو سره ددې په اړه کي گواهي ورکول جائز ده. د هغې گواهي مطلق ساتل پکار دي. د قاضي په وړاندې به ددې تفسیر او وضاحت نه کوي. مثلاً د نسب گواهي دې داسي اداکړي. چه زه گواهي ورکوم. چه فلانۍ د فلانی زوې دې. لکه دا گواهي ورکول جائز دي. چه حضرت ابوبکر ﷜ د ابوقحافه زوې دې. اوحضرت عمر ﷜ د خطاب زوې دې. حالانکه په دوی کي ئې څوک هم نه دي لیدلي. اوکه تفسیر کاوه سره ئې داسي اووئیل. چه زه په اوریدلو سره دا گواهي ورکوم. چه فلانۍ د فلانی زوې دې. نو قاضي به دده گواهي نه قبلوي.

كَمَا أَنَّ مُعَايَنَةَ الْيَدِ فِي الْأَمْلَاكِ تُطْلِقُ الشَّهَادَةَ لکه څنگه چي په املاك کي د قبضه مشاهده د شهادت اجازت ورکوي. ثُمَّ إِذَا فَسَّرَ لَا تُقْبَلُ بیا که گواه تفسیر اوکړو. نو نه به قبلیږي. كَذَا هَذَا دغه ډول دلته کي هم دي.

حل اللغة: ① الامتلاک - مالك جوړول - ② فسر - تفسیر وکړو - ③ رای - اووینی - ④ الخصوم - جگړه کونکي

تشریح: - لکه چي د قبضه مشاهده کاوه سره د قابض د ملك گواهي ورکول جائز دي. مثلاً داسي اووائي. چه دا سړې د فلانی کور مالك دې. نو قاضي به دا گواهي قبلوي. اوکه تفسیر کاوه سره ئې داسي اووئیل. چه دا سړې په فلانی کور باندې قابض دې. او ما اوریدلي دي. چه هم دې د هغې مالك دې. نو زه دده دملکیت گواهي ورکوم. نودا گواهي به نه قبلیږي. دغه ډول دلته کي هم د تفسیر کاوه نه بغیر د نسب وغیره گواهي ورکول جائز دي. او تفسیر سره گواهي ورکول جائز نه ده. په اوریدلو سره د قاضي په وړاندې د تفسیر کاوه نه بغیر گواهي ورکول ځکه جائز دي. چي کله گواه دا اووئیل. چه فلانې د فلانی زوې دې. نو معلومه شوه. چه د گواه په زړه کي ددې خبر په رشتیا او صداقت سره موجود دې. اوهر کله چي دده په زړه کي ددې صداقت موجود دې. نود گواه دا گواهي د علم لاندې شوه. اود علم او خبریدلو بنا (بنیاد) باندې چي کومه گواهي ورکولې شي. هغه قبلولې شي. ځکه به دا گواهي قبلولې شي. اوکه گواه اووئیل. چه ما اوریدلي دي. اوزه گواهي ورکوم. نو ددې مطلب دا دې. چه د گواه په زړه کي ددې خبر صداقت موجود نه دې. بلکه سماع (اوریدل) د گواهۍ بنا (بنیاد) دې. او هر کله چي ددې خبر صداقت دده په زړه کي موجود نه دې. نودا گواهي د علم لاندې نشوه. او کومه گواهي چي د علم لاندې نه وي. هغه د قبلول قابله نه وي. په دې وجه به دا گواهي نه قبلیږي.

## د قاضي په مسند (گدۍ) باندې د ناست سړي لپاره د قاضي کیدلو د گواهۍ حکم

وَلَوْ رَأَى إِنْسَانًا جَلَسَ مَجْلِسَ الْقَضَاءِ يَدْخُلُ عَلَيْهِ الْخُصُومُ او دغه ډول که یو انسان ئې اوکتلو. چه هغه د قاضي په مجلس کي د قضاء په مسند باندې ناست دې. او خصوم (مدعي او مدعي علیه) هغه له (څې) راځي. حَلَّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ عَلَى كَوْنِهِ قَاضِيًا نود کتونکي لپاره د هغه د قاضي کیدلو گواهي ورکول جائز دي.

تشریح: - علامه مرغیناني ﷫ فرمائي. که یوسړي په مسند قضاء باندې یو سړې ناست اوکتلو. او مدعي او مدعي علیه ئې هغه ته په ورتلو اوکتل. نود هغه کتونکي لپاره دا گواهي ورکول جائز دي. چه دا سړې ددې ښار قاضي دې. اگرچه ده هغه منظر نه وي کتلي. کله چي امام المسلمین هغه قاضي جوړ کړې وو.

وَكَذَا إِذَا رَأَى رَجُلًا وَامْرَأَةً يَسْكُنَانِ بَيْتًا دغه ډول كله نې چې سړې اوښځه اوكتل.چه دوی دواړه په يو كور كې اوسيږي. وَيَنْبَسِطُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَى الْآخَرِ انْبِسَاطَ الْأَزْوَاجِ او په دواړوكې هر يو د بل سره د ښځې ميړه پشان آزادی كوی. كَمَا إِذَا رَأَى عَيْنًا فِي يَدِ غَيْرِهِ لكه چې د خان نه د علاوه په قبضه كې نې كوم مال عين اوكتلو.

حل اللغة: ① يسكنان-اوسيږی-② ينبسط-خوش طبيعت-③ الازدواج-دښځې ميړه پشان ازادی كول

تشريح:- دغه ډول كه يوكس يو سړې او ښځه اوكتل.چه دواړه په يو كور كې اوسيږي.اود يو بل سره د ښځې ميړه پشان بې تكلفه (آزادی) كوی.نو هغه له دا ګواهی وركول جائز دی.چه دا ښځه دده بی‌بی ده.لكه كه د يوكس په قبضه كې نې مال عين اوكتلو.نودا ګواهی وركولې شی.چه دا مال هم ددې قابض ملك دې.خو كه قاضی دده نه پوښتنه اوكړو.چه آيا ته د عقد نكاح په وخت موجود وې.هغه اوونيل.نا،نو بيا به هم د هغه ګواهی قبلولې شی. خكه چې صرف په اوريدلو سره د هغه لپاره ګواهی وركول جائز ده.لكه د امهات المؤمنين په اړه كې د رسول الله ﷺ د ازواج مطهرات كيدلو ګواهی وركول جائز ده.نو هركله چې په اوريدلو سره ګواهی وركول جائز ده.نود ښځې ميړه پشان تعلقات كتلو سره به ګواهی وركول په درجه اولی جائز وی.

او بعض حضراتو فرمائيلی دی.چه په دې صورت كې به دده ګواهی نشی قبلولې.خكه كله چې ګواه د قاضی د سوال په خواب كې دا اوونيل.چه زه د نكاح په وخت موجود نه ووم.او ما د عقد نكاح مشاهده نه ده كړې.نو ګويا دی.كه ګواه د قاضی په وړاندې تفسير كاوه سره دا اوونيل.چه ما په اوريدلو سره ګواهی وركړې ده.او وړاندې تيرشوی ده د قاضی په وړاندې تفسير اوكړی.او داسې اووائی.چه زه په اوريدلو سره ګواهی وركوم.نو دده ګواهی به نه قبليږی.نو دغه ډول به دلته كې هم دده ګواهی نه قبليږی.

وَمَنْ شَهِدَ أَنَّهُ شَهِدَ دَفْنَ فُلَانٍ أَوْ صَلَّى عَلَى جَنَازَتِهِ فَهُوَ مُعَايَنَةٌ، اوكوم سړی چې دا ګواهی وركړله.چه دې ( يعنی زه) د فلانی سړی په دفن كې حاضر ووم.يا د هغه په جنازه مې لمونځ كړې دې.نودا معائنه ده. حَتَّى لَوْ فَسَّرَ لِلْقَاضِي قَبْلَهُ ترديې كه هغه د قاضی په وړاندې تفسير اوكړو.نو بيا به هم قاضی دا قبلوی.

حل اللغة: ① دفن-ښخ كړو-② صلی -لمونځ اوكړو-③ الخمسة-پنځه-④ اعتبارا-د امله د قياس نه

تشريح:- اوكه يو كس شهادت وركړو.چه زه د فلانی سړی پ دفن كې حاضر ووم.يا ما په هغه باندې د جنازې لمونځ كړې دې.نودا معائنه ده.يعنی ده په كتلو سره ګواهی وركړې ده.خكه چې تدفين صرف د مړی كيږی.اود جنازې لمونځ هم صرف په مړی باندې كولې شی.نو تدفين يا د جنازې لمونځ كې شريكيدل ګويا د مرګ مشاهده كول دی.هم دا وجه ده.كه ګواه د قاضی په وړاندې تفسير بيان كړو.نو بيا به هم قاضی دا قبلوی.

## صرف په اوريدلو سره د ګواهۍ وركولو څيزونه

ثُمَّ قَصَرَ الِاسْتِثْنَاءَ فِي الْكِتَابِ عَلَى هَذِهِ الْأَشْيَاءِ الْخَمْسَةِ بيا په قدوری كې په دې پنځه څيزونو باندې انحصار كول، يَنْفِي اعْتِبَارَ التَّسَامُعِ فِي الْوَلَاءِ وَالْوَقْفِ استثناء په حالات او وقف كې د اوريدلو معتبر كيدلو نفی كوی.

تشريح:- علامه مرغينانی ﷫ فرمائی.چه په قدوری كې استثناء په ذكر شوی پنځه څيزونو باندې منحصر كول، يعنی دا ونيل، چې د مشاهده كاوه نه بغير صرف په اوريدلو سره د يو شئ په اړه كې ګواهی وركول جائز نه دی.سوا د نسب، مرګ، نكاح، دخول، او ولايت د قاضی نه.په دې خبره باندې دلالت كوی.چه په ولاء او وقف كې هم په اوريدلو سره ګواهی وركول جائز نه وی.بلكه كه ګواه د غلام آزادولو يا د يوڅيز وقف كاوه پخپله مشاهده كړې وی.نو ګواهی وركول جائز دی.اوكه د خلګو نه نې په اوريدلو ګواهی وركړله.نو ناجائز ده.هم دا ظاهرالروايه دی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ آخِرًا أَنَّهُ يَجُوزُ فِي الْوَلَاءِ اود ابويوسف ﷫ نه په آخر كې دا قول نقل دې.چه په ولاء كې جائز دې. لِأَنَّهُ



بِمَنْزِلَةِ النَّسَبِ خكه چې ولاء د نسب په مرتبه كې ده. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْوَلَاءُ لُحْمَةٌ كَلُحْمَةِ النَّسَبِ} خكه نبی كريم ﷺ فرمائيلی دی.چه ولاء، د نسبی قرابت پشان يو قرابت دې.

حل اللغة: ① لحمة-قرابت-② الاعصار-جمع د عصر، زمانه-③ المعاينة-ليدل-④ يبتنی-بنا كيږی

تشريح:- خود حضرت امام ابويوسف ﷫ نه آخری روايت دادې.چه په ولاء، كې صرف اوريدلو سره ګواهی وركول جائز دی.يعنی كه حامد د خلګ ونه واوريدل.چه شاهد د خالد آزاد كړې شوې غلام دې.نود شاهد ولاء، د نسب په مرتبه كې دی.خكه چې مدنی آقا ﷺ فرمائيلی دی.چه ولاء، د نسب د قرابت پشان يو قرابت دې.او وړاندې تير شوی دی.چه د نسب په اړه كې صرف په اوريدلو سره ګواهی وركول جائز دی.نو ولاء، چې د نسب په مرتبه كې دې.په دې كې به هم د خلګو نه په اوريدلو سره ګواهی وركول جائز وی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَجُوزُ فِي الْوَقْفِ اود امام محمد ﷫ نه روايت دې.چه په وقف كې جائز دې. لِأَنَّهُ يَبْقَى عَلَى مَرِّ الْأَعْصَارِ خكه چې وقف د زمانې تيريدلو باوجود پاته كيږی.

تشريح:- اود امام محمد ﷫ نه روايت دې.چه د وقف په اړه كې د خلګو نه په اوريدلو سره ګواهی وركول جائز دی.مثلاً كه حامد د خلګو نه واوريدل.چه د خالد فلانې كور د فلانی مسجد لپاره وقف دې.نود حامد لپاره دا ګواهی وركول جائز دی.چه د خالد فلانې كور د فلانی مسجد لپاره وقف دې.اګرچه ګواه يعنی حامد د وقف كاوه مشاهده نه وی كړې. ددې دليل دادې.چه وقف هم د ډيرې مودې تيريدلو پورې پاته كيږی.نوكه په وقف كې د معائنه او مشاهده ګواه شرط وی.نو ددوی د مرګ نه روسته به وقف باطل وی.حالانكه د وقف ور كاوه لپاره مشاهده شرط نه ده.بلكه د خلګو نه په اوريدلو سره ګواهی وركول هم جائز ده.

إِلَّا أَنَّا نَقُولُ الْوَلَاءُ يَبْتَنِي عَلَى زَوَالِ الْمِلْكِ خو موږ وايو.چه ولاء، په ملك زائل كيدلو باندې مبنی ده. وَلَا بُدَّ فِيهِ مِنَ الْمُعَايَنَةِ فَكَذَا فِيمَا يَبْتَنِي عَلَيْهِ حالانكه په دې كې معائنه ضروری ده.نو هم دغه ډول په هغه څيزونوكې كوم چې په زوال ملك باندې مبنی دی.

تشريح:- علامه مرغينانی ﷫ د امام ابويوسف ﷫ په خواب كې فرمائی.چه ولاء، د ملك په زوال باندې موقوف دی.يعنی مولا به د ولاء، هغه وخت مستحق وی.كله چې د غلام نه د مولا ملك زائل شی.بهرحال ولاء، د ملك په زوال باندې موقوف دی.اود ملك د زوال په ګواهۍ كې د ګواه لپاره د ملك د زوال معائنه او مشاهده كول بالاجماع شرط ده.نو كوم شئ يعنی ولاء، د ملك په زوال باندې موقوف ده.په دې كې به هم معائنه او مشاهده شرط وی.

وَأَمَّا الْوَقْفُ فَالصَّحِيحُ أَنَّهُ تُقْبَلُ الشَّهَادَةُ بِالتَّسَامُعِ فِي أَصْلِهِ او پاتې شو وقف،نو صحيح داده.چه په اصل وقف كې په اوريدلو سره ګواهی قبلولې شی. دُونَ شَرَائِطِهِ لِأَنَّ أَصْلَهُ هُوَ الَّذِي يَشْتَهِرُ او ددې په شرائطو كې نه دی.خكه چې اصل وقف مشتهر كيږی.

تشريح:- او پاتې شو وقف، نو صحيح داده.كه په اصل وقف كې د خلګو نه په اوريدلو سره ګواهی وركړې ده.نودا ګواهی به قبلولې شی.خود وقف تفصيلات او آمدن ( او مصارفو) كې به په اوريدو سره ګواهی نشی قبلولې.په اصل وقف كې په اوريدلو سره د ګواهۍ صورت دادې.چه مثلاً په عامو خلګو كې دا شهرت دې. چې د فلان بن فلان كور د دارالعلوم لپاره وقف دې.نود خلګو نه په اوريدلو سره دا ګواهی وركول جائز ده.چه د فلان بن فلان كور د دارالعلوم لپاره وقف دې.ددې نه روسته دا ګواهی وركوی.چه ددې كور د دومره آمدن مصارف د طالبانو لپاره دې.او دومره د كتابونو لپاره دې.او دومره د تنخواه ګانو لپاره دې.نود خلګو نه په اوريدو سره ددې تفصيلاتو ګواهی وركول جائز نه ده.او وجه داده.چه اصل وقف خو په خلګو كې مشتهر وی. خو ددې تفصيلات او شرائط مشهور نه وی.نو اصل وقف كوم چې په خلګ وكې مشتهر دې.د خلګو نه په اوريدلو سره ګواهی وركول جائز ده.اود وقف شرائط او تفصيلات چونكه په خلګو كې مشهور نه دې.په دې وجه د خلګو نه په اوريدلو سره ګواهی وركول ناجائز دی.

## په قبضه کښې لیدلو سره د مالك کېدلو د ګواهۍ ورکولو حکم

قَالَ وَمَنْ كَانَ فِي يَدِهِ شَيْءٌ سِوَى الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ فرمائي. اوچه د يو کس په قبضه کي يو شئ وي. د غلام او وينځي نه بغير، وَسِعَكَ أَنْ تَشْهَدَ أَنَّهُ لَهُ نو ستا لپاره جائز دی. چه ته دا ګواهي ورکړې. چه دا د هغه ملك دې.

**حل اللغة:** ① وسعک-جائزدی تاله-② اقصى-اخرى-③ يستدل-دلالت کولې شى-④ يكتفى-كفايت کولې شى.

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې. چه يو کس د بل سړی په قبضه کي دغلام او وينځې نه علاوه څه شئ اوکتلو. بيا ده هم دا شئ د بل په قبضه کي اوکتلو. او قابض اول په دوهم قابض باندې دعوه اوکړله. چه ددې شئ مالك زه يم. نو ددې کتونکي لپاره دا ګواهي ورکول جائز دی. چه مدعى ددې شئ مالك دې.

لِأَنَّ الْيَدَ أَقْصَى مَا يُسْتَدَلُّ بِهِ عَلَى الْمِلْكِ دليل دا دې چې قبضه د آخرى درجې داسې شئ دې. چه ددې په ذريعه ملك باندې استدلال کيدلې شى. إِذْ هِيَ مَرْجِعُ الدَّلَالَةِ فِي الْأَسْبَابِ كُلِّهَا فَيُكْتَفَى بِهَا خکه چې په ټولو اسبابو کي قبضه مرجع دلالت ده. نو هم په دې اکتفاء کولې شى.

**تشريح:**- ددې دليل دادې. چه قبضه د آخرى درجې داسې شئ دې. چه ددې نه په دې خبره باندې استدلال کيدلې شى. چه قابض ددې مالك دې. يعنى د ګواه په حق کي د ملك پيژندلو قبضه دليل ظاهردې. په دې شرط چې د قبضه په سلسله کي جګړه کونکې موجود نه وى. يعنى قبضه په ظاهره په دې خبره باندې دلالت کوى. چه قابض دشئ مقبوض مالك دې. خکه چې شراء، وغيره. چه څومره هم د ملك اسباب دى. د انجام کار په اعتبار سره په ټولو کي په ملك باندې قبضه دلالت کوى. مثلاً خالد مشاهده اوکړله. چه حامد د شاهد نه يو قلم اخستې دې. نود حامد (مشترى) ملك به هغه وخت معلوميږى. کله چې د بائع ملك معلوم شى. اود بائع ملك به د هغه د قبضې نه معلوميږى. يعنى د اخستلو په وجه مشترى د مبيع هغه وخت مالك کيږى. کله چې بائع پخپله هم د هغې مالك وى. اود بائع مالك کيدل به په ښکاره هغه وخت معلوميږى. کله چې بائع په دې قابض وى. نو کله چې واړه اسباب په ملك کي د انجام کار په اعتبار سره، قبضه د ملك ظاهر دليل دې. نو صرف قبضه کتلو پسره دا ګواهي ورکول جائز دی. چه قابض د شئ مقبوض مالك دې. البته د شهادت په وخت به دا نه وائى. چه زه ګواهي ورکوم. چه فلانى ددې شى مالك دې. خکه چې ما دا شئ د هغه په قبضه کي کتلې دې. يعنى د قاضى په وړاندې به د کتلو تفسير او وضاحت نه کوى. خکه چې قبضه د ملك ظاهر دليل دې. او ظاهر دليل د شهادت ادا کاوه لپاره کافى دې. خود قاضى د قضاء لپاره کافى نه دې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ يُشْتَرَطُ مَعَ ذَلِكَ أَنْ يَقَعَ فِي قَلْبِهِ أَنَّهُ لَهُ اود ابويوسف ﷬ نه روايت دې. چه ددې سره دا هم شرط دې. چه د ګواه په زړه کي دا خبره راشى. چه دا شئ هم دده ملك دې.

**حل اللغة:** ① يقع-واقع کيږى-② قلب-زړه-③ يشترط-شرط کولې شى-④ يحتمل-احتمال لرى

**تشريح:**- دحضرت امام ابويوسف ﷬ نه نقل دى. چه په قبضه کتلو سره د قابض د ملکيت ګواهي ور کاوه کي دا شرط هم دې. چه د ګواه په زړه کي دا يقين اوشى. چه دا شئ هم ددې قابض ملك دې. او ددې دليل دادې. چه شهادت ورکول هغه وخت حلاليږى. کله چې شاهد ته پوره طور باندې د مشهود به علم او يقين اوشى. خکه حديث دې. ﴿اذا علمت مثل الشمس فاشهد والا فدع﴾ خوکله چې پوره طور باندې علم او يقين کيدل متعذر شى. نو شهادت قلب ارخ ته به رجوع کولې شى. يعنى کم ازکم قلب ددې خبرې شاهد وى. چه شئ مقبوض د قابض ملك دې. خکه چې قبضه د قابض په ملك باندې خکه دلالت کوى. چه په قبضه سره د قابض د ملك ګمان کيږى. خوکله چې د ګواه (کتونکى) په زړه کي دا خبره رانغله. چه قابض ددې مالك کيداې شى. نو ګواه ته به د قابض د ملك ګمان هم نه وى. او هرکله چې ګواه ته د قابض دملك ګمان اونشو. نوقبضه به د قابض په ملك باندې دلالت هم نه کوى. نو ثابته شوه. چه صرف قبضه د قابض په ملك باندې د ګواهي ور کاوه لپاره کافى نه ده. بلکه قبضه سره د ګواه په زړه کي ددې خبرې راتګ هم ضرورى دى. چه قابض د شئ مقبوض مالك دې. هم دا وجه ده. که يو کس د جاروکش (



خاکروب) په لاس کي يو قيمتى غمې اوليدلو. نو ددې کتونکى لپاره د جاروکش د مالك کيدلو ګواهي ورکول جائز نه ده. ددې نه معلومه شوه. چه صرف قبضه د ملکيت شهادت ور کاوه لپاره کافى نه ده. بلکه د ګواه په زړه کي د قابض د مالك کيدلو رجحان (ميلان) پيداکيدل ضرورى دى.

قَالُوا: وَيَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ هَذَا تَفْسِيرًا لِإِطْلَاقِ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي الرِّوَايَةِ مشائخ فرمائي. چه دا احتمال هم شته. چه شهادت قلب د امام محمد ﷬ د روايت مطلقه تفسير دې. فَيَكُونُ شَرْطًا عَلَى الِاتِّفَاقِ نو شهادت قلب به بالاتفاق شرط وى.

**تشريح:**- علامه مرغينانى ﷬ فرمائي. چه د احناف مشائخو ﷭ خيال دادې. چه د امام ابويوسف ﷬ روايت د امام محمد ﷬ د مطلق روايت يعنى د متن د مسئلې تفسير دې. يعنى امام محمد ﷬ په متن کي صرف دا فرمائيلي دى. چه قبضه وى. نود ملك ګواهي ورکول جائز ده. خو کيداې شى. چه دده مطلب داوى. چه د هغه په زړه کي دا راشى. چه دده قبضه د مالك په طور وى. نو هله ګواهي ورکول جائزدى. نوکه د امام محمد ﷬ د بيان شوى متن مطلب دا وى. نود امام ابويوسف ﷬ روايت به ددې مطلق متن تفسير وى. اود ګواه په زړه کي ددې يقين راتګ د ټولو په نيز شرط وى.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: دَلِيلُ الْمِلْكِ الْيَدُ مَعَ التَّصَرُّفِ، وَبِهِ قَالَ بَعْضُ مَشَايِخِنَا رَحِمَهُمُ اللَّهُ او امام شافعى ﷬ فرمائي. چه د ملك دليل قبضه مع التصرف دې. او هم ددې قائل زموږ بعض مشائخ دى.

**تشريح:**- حضرت امام شافعى ﷬ فرمائي. چه د ملکيت دليل هغه قبضه ده. کومه چې مع التصرف وى. يعنى که قابض په شئ مقبوض کي تصرف کوى. نود قابض قبضه به دده د ملکيت دليل وى. او ګواه ته به د قبضه مع التصرف او ملکيت ددې د مالك کيدلو ګواهي ورکول جائز وى. اوکه تصرف نه کوى. نو قبضه بلا تصرف به د ملکيت دليل نه وى. اود ګواه لپاره به ددې قبضې په بنا (بنياد) باندې د قابض د مالك کيدلو ګواهي ورکول جائز نه وى. هم دا زموږ د بعض مشائخو احنافو ﷭ قول دې.

لِأَنَّ الْيَدَ مُتَنَوِّعَةٌ إِلَى إِنَابَةٍ وَمِلْكٍ دليل دا دې چې قبضه امانت او ملك اړخ ته منقسم کيږى.

**حل اللغة:** ① متنوعة-تقسيميږى-② نيابة-نيابت\قائم مقام-③ عاين-مشاهده ا وکړه-④ وجوه-صورتونه

**تشريح:**- دليل دا دې چې قبضه په دوې (دوه) قسمه ده. ① د امانت قبضه ② د ملك قبضه... يعنى لکه څنګه چې سړې د مالك کيدلو په وجه قبضه کوى. دغه ډول د امين کيدلو په وجه قبضه کوى. نو نفس قبضه به د قابض د مالك کيدلو دليل نه وى. خکه کيداې شى. چه دده قبضه مالکانه نه وى. بلکه د امانت په طور وى. او هرکله چې نفس قبضه د قابض د مالك کيدلو دليل نه دې. نو صرف قبضه کتلو سره د قابض مالك کيدلو ګواهي ورکول به هم جائز نه وى. البته که قبضه سره قابض په شئ مقبوضه کي تصرف هم کوى. نودا قبضه مع التصرف به دده د مالك کيدلو دليل وى. خکه چې د تصرف مجاز مالك وى. امين نه وى. نو ثابته شوه. چه خالص قبضه د قابض د ملکيت دليل نه دې. بلکه قبضه مع التصرف دده د مالك کيدلو دليل دې.

قُلْنَا: وَالتَّصَرُّفُ يَتَنَوَّعُ أَيْضًا إِلَى نِيَابَةٍ وَأَصَالَةٍ موږ ځواب ورکوو. چې تصرف هم نيابت او اصالت اړخ ته منقسم کيږى.

**تشريح:**- علامه مرغينانى ﷬ د امام شافعى ﷬ د دليل په ځواب کي فرمائي. که د قبضه دوې (دوه) قسمونه دى. نود تصرف هم دوې (دوه) قسمونه دى. خکه چې انسان کله پخپله د خپل خان لپاره تصرف کوى. اوکله د بل د نائب په حيثيت سره تصرف کوى. لکه وکيل او مضارب خپل خان لپاره تصرف نه کوى. بلکه د موکل او رب المال لپاره تصرف کوى. نوکه قبضه بلا تصرف د ملکيت دليل نه ګرخولوکي، قبضه کي د امانت احتمال معتبر دې. نو زموږ د بيان شوى احتمال (نيابت د تصرف) په بناء باندې تصرف به هم د ملکيت دليل نه وى. اوکه د نيابت د تصرف احتمال معتبر نه دې. نود امانت د قبضې احتمال به هم معتبر نه وى. اوهرکله چې د امانت د قبضې احتمال معتبر نه دې. نو خالى قبضه به د قابض د مالك کيدلو دليل وى. او صرف قبضه کتلو سره به د قابض د ملکيت ګواهي

ورکول جائز وی.

## د مالك او ملك معائنه نه روسته د ګواهۍ ورکولو حکم

ثُمَّ الْمَسْأَلَةُ عَلَى وُجُوهٍ: بیا دمسئلې یو څو صورتونه دی. بیا دمسئلې یو څو صورتونه دی. إِنْ عَايَنَ الْمَالِكَ الْمِلْكَ حَلَّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ که ده د مالك او ملك دواړو مشاهده کړې ده.نو دده لپاره ګواهي ورکول جائز ده.

تشریح:- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه ددې مسئلې څو صورتونه دی.یوصورت دا دې چې ګواه د مالك او ملك (مملوك) دواړو مشاهده او معائنه کړې وی. په دې طریقه چې هغه مالك دده د نوم، نسب او شکل سره پیژندلې وی.اود ملك معائنه ئې هم کړې ده.په دې طریقه باندې که هغه شئ مملوك ددې د حدود او حقوق سره پیژندلې وی.او دغه مملوك شې یئ د څه جګړې نه بغیر دده په قبضه کې هم کتلې دې.او ددې کتونکی په زړه کې دا خبره هم راغله.چه دا شئ ددې قابض دې.نو معائنه او مشاهده کونکی سړی لـه دا ګواهي ورکول جائز ده.چه دا شئ د قابض ملك دې.او قابض ددې شی مالك دې.خکه چې ګواه په علم او بصیرت سره ګواهي ورکړې ده.او وړاندې تیرشوی دی.چه کومه ګواهي په علم او بصیرت سره وی.هغه قبلولې شی.نو په دې صورت کې به هم د ګواه ګواهي د قبلول قابل وی.

وَكَذَا إِذَا عَايَنَ الْمِلْكَ بِحُدُودِهِ دُونَ الْمَالِكِ اسْتِحْسَانًا او دغه ډول که ده د ملك سره ددې د حدودو مشاهده کړې وی.او مالك ئې نه وی کتلې.نو بیا هم استحساناً ( ګواهي ورکول ) حلال دی.

تشریح:- دوهم صورت دا دې چې دملك ( مملوك) معائنه ئې کړې وی. اود مالك ئې نه وی کړې.یعنی نه خو د مالك د شکل نه آشنا دې.اونه د هغه د نسب نه خبر دې.بلکه صرف د اوریدلو په بنا (بنیاد) باندې دا وائی.چه فلانې جائیداد د کوم چې ما معائنه کړې ده.هغه د فلان بن فلان ارخ ته منسوب دې.نو په دې صورت کې د قیاس تقاضا داده.چه دده لپاره د فلان بن فلان د ملکیت ګواهي ورکول جائز نه وی.خکه چې داد مشهود لـه ( دچا لپاره چې ګواهي ورکوی) مجهول کیدلو باوجود مالك لپاره د ملك ګواهي ورکول دی.اودا خبره منلې شوې ده.چه د مشهود به جهالت د شهادت د جواز لپاره مانع ده.نود مشهود لـه جهالت به هم د شهادت د جواز لپاره مانع وی. البته استحساناً ګواهي ورکول جائز ده.

لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ بِالتَّسَامُعِ فَيَحْصُلُ مَعْرِفَتُهُ دلیل دا دې چې د مالك نسب د خلګو نه په اوریدلو سره معلومیدې شی.نو ددې شناخت به حاصل شی.

حل اللغة: ① التسامع -اوریدو-② یحصل-حاصلیږی-③ رقیقان-تثنیه د رقیق ،غلام-④ صغیران-تثنیه د صغیر،ماشوم

تشریح:- دلیل دا دې چې په دې صورت کې ملك خو په مشاهده سره معلوم شو.اود مالك نسب د عامو خلګو نه په اوریدلو سره ثابت شو.خکه وړاندې تیر شوی دی.چه د نسب ګواهي ور کاوه لپاره سماع او اوریدل کافی دی.نو په دې صورت کې به هم د معلوم شئ ګواهي، د معلوم سړی لپاره وی.یعنی مشهود به او مشهود لـه د واړه معلوم شو.او ددوی دواړو د معلومیدلو په صورت کې ګواهي ورکول جائز وی.په دې وجه به په دې صورت کې ګواهي ورکول استحساناً جائز وی.

وَإِنْ لَمْ يُعَايِنْهُمَا او که ده دمالك او ملك دواړو مشاهده نه وی کړې. أَوْ عَايَنَ الْمَالِكَ دُونَ الْمِلْكِ یا ئې دمالك مشاهده کړې وی. اود ملك مشاهده ئې نه وی کړې. لَا يَحِلُّ لَهُ نو دده لپاره به ګواهي ورکول حلال نه وی.

تشریح:- دریم صورت دا دې.چه ګواه د مالك او ملك دواړو معائنه نه ده کړې.بلکه د خلګو نه ئې اوریدلی دی.چه په فلانی ښار کې د فلانی دومره قدرې جائیداد دې.حالانکه ګواه نه هغه جائیداد پیژنی.نه ئې په هغې باندې د چا قبضه کتلې ده.نود ګواه لپاره دا ګواهي ورکول جائز دی.چه دا جائیداد د فلان بن فلان ملکیت دې.خکه چې په دې صورت کې د ګواه ګواهي صرف اټکل او اندازې سره ده.حالانکه د شهادت ادا کاوه لپاره د



شهود به علم ضروری دې.نود ادائې شهادت لپاره د شهود به علم شرط دې.او دلته کې علم اونه موندلې شو.نو په دې صورت کې به ګواهي ورکول هم جائز نه وی.

څلورم صورت دا دې.چه ګواه د مالك معائنه کړې ده.خود ملك معائنه ئې نه ده کړې.نو په دې صورت کې هم ګواه لپاره ګواهي ورکول جائز نه ده.خکه چې د ملك ( مملوك) معائنه نه کاوه په وجه د مشهود به معلومیدل شرط دی.او په دې څلورم صورت کښې مشهود به معلوم نه دې.نو په دې صورت کې ګواه لپاره ګواهي ورکول هم جائز نه دی.

## په قبضه کښې د غلام یا وینځې په کتلو باندې د ملك د ګواهۍ حکم

وَأَمَّا الْعَبْدُ وَالْأَمَةُ، فَإِنْ كَانَ يَعْرِفُ أَنَّهُمَا رَقِيقَانِ فَكَذَلِكَ او پاتې شو غلام او وینځه، نو که یوکس دا پیژنی.چه دا دواړه رقیق دی.نو په دوی کې هم دغه حکم دې. لِأَنَّ الرَّقِيقَ لَا يَكُونُ فِي يَدِ نَفْسِهِ خکه چې رقیق پخپله قبضه قدرت کې نه وی.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که یوکس یو غلام یا وینځه د چا په قبضه کې د هغه په خدمت کاوه ارلیدل نو که کتونکې سړې ددوی رقیق کیدل پیژنی.نود هغه لپاره دا ګواهي ورکول جائز ده.چه قابض ددوی مالك دې.که غلام او وینځه دواړه صغیر( غیر عاقل) وی.اوکه کبیر( عاقل) وی.خکه چې د رقیت په وصف سره دوی دواړو پخپل ذات باندې هیڅ قابو نشته.اوکه کتونکی دوی د بل چا په قبضه کې کتلی دی.نودا داسې شوه.لکه چې بل په قبضه کې ئې کپړه کتلې وی.اودا خبره وړاندې تیره شوې ده.که یوکس د چا په قبضه کې کپړه وغیره څه شئ اوکتلو.نو کتونکی لـه د قابض د ملکیت ګواهي ورکول جائز ده.نو هم دغه ډول غلام او وینځه د چا په قبضه کې په کتلو سره د قابض د ملك ګواهي ورکول جائز ده.په دې شرط چې کتونکې ( ګواه) ددوی رقیق کیدل پیژنی.

وَإِنْ كَانَ لَا يَعْرِفُ أَنَّهُمَا رَقِيقَانِ اوکه دا نه پیژنی.چه دا دواړه رقیق دی. إِلَّا أَنَّهُمَا صَغِيرَانِ لَا يُعَبِّرَانِ عَنْ أَنْفُسِهِمَا فَكَذَلِكَ خودا دواړه صغیر وی.پخپل ذات سره نشی تعبیر کیدلې.نو بیا هم دغه حکم دې. لِأَنَّهُ لَا يَدَ لَهُمَا خکه چې ددوی لپاره ذاتي اختیار نشته.

تشریح:- اوکه کتونکې ددوی رقیق کیدل نه پیژنی.نوکه غلام او وینځه دومره صغیر وی.چه دوی خپل ما فی الضمیر هم نشی اداکولې. نو په داسې صورت کې هم د کتونکی لپاره د قابض مالك کیدلو ګواهي ورکول جائز ده.خکه چې په دې صورت کې هم دوی ته پخپل ذات باندې قابو حاصل نه دې.او کتونکی هغه د بل په قبضه کې کتلې دې.نودا داسې شوه.لکه چې یوکس د بل په قبضه کې کپړه وغیره څه سامان کتلې وی.او کپړه وغیره سامان د چا په قبضه کې کتلو سره چونکه د قابض د مالك کیدلو ګواهي ورکول جائز ده.په دې وجه ذکر شوی صورت کې هم ګواهي ورکول جائز دی.چه قابض ددې غلام او وینځې مالك دې.

وَإِنْ كَانَا كَبِيرَيْنِ فَذَلِكَ مَصْرِفُ الِاسْتِثْنَاءِ اوکه دواړه عاقل وی.نو هم دا د استثناء محل دې. لِأَنَّ لَهُمَا يَدًا عَلَى أَنْفُسِهِمَا فَيَدْفَعُ يَدَ الْغَيْرِ عَنْهُمَا خکه چې ددې دواړو پخپل ذات باندې قابو دې.نو ددې دواړو په ذات باندې ددوی قابو ثابتیدل به ددوی دواړو د غیر نه قبضه لرې کوی. فَانْعَدَمَ دَلِيلُ الْمِلْكِ نود ملکیت دلیل معدوم شو.

حل اللغة: ① کبیرین -تثنیه د کبیر ،لوئې-② مصرف-محل-③ یدفع-ورکولې به شی-④ فانعدم-ختم شو

تشریح:- او که هغه وینځه او غلام پوهه ( او سمجدار) وی.که بالغ وی.او که نا بالغ وی.نو هم دا صورت د استثناء «الا سوى العبد والأمة» محل دې.یعنی په دې صورت کې صرف د چا قبضه کتلو سره دا ګواهي ورکول جائز نه ده.چه قابض ددې غلام یا وینځې مالك دې.خکه چې په دې صورت کې غلام او وینځې ته پخپل ذات باندې قابو حاصل ده.که دې د خپل مورزاده (پیدائشی) آزاد کیدلو دعوه اوکړی.نو دده قول به معتبر وی.او په ده به د هیڅ چا قبضه ثابت نه وی.نو هرکله چې دوی ته پخپل ذات باندې قابو حاصل دې.نودا به ددوی دواړو نه د بل قبضه لرې

کوی.او هرکله چې ددوی نه د بل قبضه لرې شوه.نود ملکیت دلیل ( یعنی قبضه) معدوم شوه.او هرکله چې د ملکیت دلیل معدوم شو.نود کتونکی لپاره به د قابض د مالك کیدلو ګواهي ورکول هم جائز نه وي.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ فِيهِمَا أَيْضًا اعْتِبَارًا بِالثِّيَابِ.اود ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې.چه دده لپاره په دوی دواړوکې هم کپړو باندې قیاس کاوه سره ګواهي ورکول حلال ده. وَالْفَرْقُ مَا بَيَّنَّاهُ،وَاللَّهُ أَعْلَمُ او توپیر هغه دې.کوم چې موږ بیان کړو.والله أعلم.

حل اللغة: ① اعتبار-قیاس-② الثیاب-جمع د ثوب،جامې-③ بینا-موږ بیان کړې-④ الصواب-حق

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې.که دغه غلام او وینځه کبیر یعنی سمجدار ( او پوهه) وي.نو بیا هم د کتونکی لپاره د قابض د مالك کیدلو ګواهي ورکول حلال او جائز ده.ددې روایت دلیل په کپړو او نورو سامانونو باندې قیاس دې.یعنی لکه څنګه چې د یو کس په قبضه کې په کپړو کتلو سره د قابض د مالك کیدلو ګواهي ورکول جائز ده.اګرچه غلام او وینځه کبیر وي.یعنی سمجدار ( پوهه) وي.چه دوی خپل مافی الضمیر ادا کولې شي.هم دا د صاحبینو رحمهما الله نه نقل دی.ګویا درې واړه حضراتو په ذکر شوی ټولو صورتونوکې قبضه د ملکیت دلیل ګرځولې دې.که یو کس دا دعوه اوکړله.چه د حامد په قبضه کې کوم غلام یا وینځه ده.زه د هغې مالك یم.او قابض د خپل مالك کیدلو دعوه کوی.نوهم د قابض قول به قبول وي.ځکه چې د قبضه په وجه ظاهر حال هم دهغه موافق دې.

تشریح:- خو توپیر هغه دې.کوم چې موږ بیان کړو.یعنی د کپړو خپل ذاتی اختیار نه وي.نو په دې به د قابض قبضه معتبر وي.اود سمجدار( پوهه) غلام او وینځې چونکه خپل خان باندې ذاتی اختیار وي.په دې وجه به په دوی باندې د چا قبضه معتبر نه وي.نو هرکله چې په کپړو کې د قابض قبضه معتبر ده.نو ددې قبضه به دملك دلیل وي.او سمجدار غلام او وینځه کې چونکه د هیڅ چا قبضه معتبر نه ده.په دې وجه د قابض ظاهری قبضه به په دوی د مالك کیدلو دلیل نه وي.والله اعلم بالصواب.

## باب من يقبل شهادته ومن لا يقبل

( دا) باب د هغه کس( په بیان کې ) دې.چه د هغه ګواهي قبلولې شي.اود هغه خلګ و( په بیان کې ) دې.چه د هغوی ګواهي نشی قبلولې.

تشریح:- په دې باب کې به د هغه خلګو بیان کولې شي.دکوم شهادت چې قبلولې شي.اود کومو خلګو شهادت چې نشی قبلولې.اوچونکه هغه شیان په کوم کې چې شهادت قبلولې شي.یا نشی قبلولې.د شهادت محل دی.اومحل شرط وي.اوشرط په مشروط باندې مقدم وي.په دې وجه د هغه څیزونو بیان د کوم شهادت چې قبلولې شي.یا نشی قبلولې.مخکې اوکړې شو.اود هغه خلګو بیان د کومو شهادت چې قبلولې شي.یا نشی قبلولې.روسته اوکړې شو.

د شهادت رد کیدلو اصل او بنا (بنیاد) تهمت دې.① اود صاحب شریعت ﷺ ارشاد دې. «لا شهادة......الخ» د متهم سړی شهادت معتبر نه دې.② دوهم دلیل دادې.چه شهادت یو خبر دې.چې د صدق او کذب احتمال لری.خو ددې حجت شرعی کیدل به هغه وخت ثابتیږی.کله چې په دې کې د صدق اړخ راجح وي.او په تهمت سره د صدق اړخ نه راجح کیږی.نو هرکله چې تهمت سره د صدق اړخ نه راجح کیږی.نود تهمت په صورت کې به ددې حجت شرعی کیدل هم نه ثابتیږی.او هرکله چې د تهمت په وجه ددې حجت شرعی کیدل ثابت نشو.نودا به رد کولې شی.نو معلومه شوه.چه د تهمت په وجه به شهادت رد کولې شي.

① او تهمت کله دهغه شی نه دعاجز کیدلو په وجه وي.کوم چې شریعت د صدق دلیل جوړ کړې دې.لکه محدود فی القذف.② اوکله تهمت دداسې معنی په وجه کیږی.کومه معنی چې په مشهود له کې وي.مثلاً د ولادت رشته، یعنی که د شاهد او مشهود له په منځ کې د ولادت قرابت ( رشته) وي.نو شاهد به په دې خبرې سره متهم وي.چه



هغه به د قرابت په وجه مشهود له ته په مشهود علیه باندې ناجائز ترجیح ورکوی.③ او تهمت کله دداسې معنی په وجه کیږی.کوم چې پخپله په ګواه کې موجود وي.لکه فسق، ځکه چې کوم سړې د کذب نه علاوه ددین د نورو ممنوعاتو نه نه منع کیږی.هغه به د کذب او دروغ وئیلو نه هم خان نه ساتي.او هرکله چې د دروغ وئیلو نه خان نه ساتي.نو هغه به یقیناً متهم بالکذب وي.④ اوکله تهمت دداسې خلل په وجه وي.چه د مشهود له او مشهود علیه په منځ کې د توپیر قدرت نه کیدلو په وجه وي.لکه د ګواه نا بینا کیدل.

### د نا بینا( ړوند) د ګواهۍ حکم

قَالَ: وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَعْمَى.(¹)اود نا بینا سړی ګواهي به نشی قبلولې وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: تُقْبَلُ فِيمَا يَجْرِي فِيهِ التَّسَامُعُ او امام زفر رحمه الله فرمائی.او هم داد ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې.چه د د نابینا ګواهي په هغه څیزونوکې قبلولې شی.په کومو څیزونو کې چې تسامع جاری وي. لِأَنَّ الْحَاجَةَ فِيهِ إِلَى السَّمَاعِ وَلَا خَلَلَ فِيهِ ځکه چې په داسې ګواهۍ کې صرف د اوریدلو اړتیا دې.اود نابینا په سماعت ( اوریدلو) کې هیڅ خلل نشته.

حل اللغة: اعمی -ړوند-یجری-جاری کیږی-السماع- اوریدل-خلل-خلل، رکاوټ

تشریح:- په حدود او قصاص کې په اتفاق سره د نابینا ګواهي نه قبلیږی البته که نابینا په هغه څیزونوکې ګواه دې.په کومو کې چې د خلګو نه په اوریدلو سره ګواهي ورکول جائز ده. لکه نسب، او مرګ. نود امام زفر رحمه الله په نیز به د نابینا ګواهي قبلولې شي.هم دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه د ابن شجاع روایت دې.

دلیل دادې.چه په کومو څیزونوکې د خلګو نه په اوریدلوکې د خلګو نه په اوریدلو ګواهي ورکول جائز دی.په هغه څیزونوکې صرف د اوریدلو اړتیا دې.اود نابینا په سماعت کې هیڅ خلل نشته.بلکه د نابینا سماعت د بینا سړی پشان دې.نو هرکله چې په دې څیزونو کې صرف د اوریدلو اړتیا دی.اود نابینا سړی په سماعت کې هیڅ خلل نشته.نو په دې څیزونوکې به د نابینا ګواهي قبلولې شی.البته که نابینا سړې ګڼ هم وي.نو دده ګواهي به بالاتفاق نه قبلیږی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ: يَجُوزُ إِذَا كَانَ بَصِيرًا وَقْتَ التَّحَمُّلِ او امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله فرمائی.چه د نابینا ګواهي جائز ده.په دې شرط چې هغه د شهاد د تحمل ( اوچتولو) په وخت بینا وي.

حل اللغة: ① بصیر -لیدونکې-② التحمل-اوچتول،اوریدل-③ لسان-ژبه-④ موقف-بې عیبه

تشریح:- اوکه نا بینا په هغه څیزونو کې ګواه دې.په کوموکې چې د خلګو نه په اوریدلو سره ګواهي ورکول جائز نه ده. لکه بیع او شراء. نو که نا بینا د شهادت د تحمل په وخت بینا او مشهود به غیر منقول وي.نود امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله په نیز به دې صورت کې د هغه ګواهي قبلولې شي.او که په دې دواړو خبروکې کومه یوه خبره منتفی شي.یعنی نا بینا د شهادت د تحمل په وخت بینا نه وي.یا مشهود به غیرمنقول نه وي.بلکه شیٔ منقول وي.نود ائمه ثلاثه ( ابوحنیفه او صاحبین رحمهم الله) په دې باندې اتفاق دې.چه په دې صورت کې به د نا بینا ګواهي نه قبلیږی.

بهرحال د ابویوسف رحمه الله په نیز د شهادت د تحمل په وخت د ګواه بینا کیدل شرط دی.اود طرفینو رحمهما الله په نیز د شهادت د تحمل د وخت نه واخله د قاضي د قضاء پورې د ګواه بینا کیدل شرط دی.نوکه ګواه د شهادت ادا کاوه نه روسته د قاضي د قضاء نه وړاندې نا بینا شو.نو قاضی ته به په دې شهادت باندې د فیصلې ور کاوه اجازت نه وي.د ذکر شوی مذهبونو لنډیز داده.چه په حدودو او قصاص کې به د نابینا ګواهي نه قبلیږی.

---

¹) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الكفاية (٦\٤٧٥) وفتح القدير(٦\٤٧٣) وردالمحتار(٤\٤٢١) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٣٤)-

**بِحُصُولِ الْعِلْمِ بِالْمُعَايَنَةِ، وَالْأَدَاءُ يَخْتَصُّ بِالْقَوْلِ وَلِسَانُهُ غَيْرُ مُوفٍ وَالتَّعْرِيفُ يَحْصُلُ بِالنِّسْبَةِ كَمَا فِي الشَّهَادَةِ عَلَى الْمَيِّتِ** دليل دا دي چې هغه ته د معائنه په وخت علم حاصل شوي دي.او اداء كول قول سره مختص دي.او دده ژبه عيب دار نه ده.او شناخت ( پيژندگلو) كول په نسب بيانولو سره حاصليږي.لكه څنګه چې په مړي كي په ګواهئ كي دي.

**تشريح:-** دليل دادي.چه نابينا هركله د تحمل شهادت په وخت ( د ګواهئ اوچتولو په وخت) بينا او كتونكي (نظر والا) وو.نو هغه ته د مشهود به علم حاصل شوي دي.اوكوم سړي ته چې د تحمل شهادت په وخت په مشاهده سره د مشهود به علم حاصليږي.د هغه تحمل ( ګواهي اوچتول) صحيح كيږي.بهرحال كوم سړي چې في الحال نابينا دي.خود تحمل شهادت په وخت نظر والا وو.د هغه تحمل شهادت صحيح شو.اوس پاتي شو د شهادت اداكول، نو هغه صرف په كلام سره كيږي.اود نابينا په ژبه كي چونكه هيڅ عيب نشته.په دي د هغه په كلام كي به هيڅ خلل نه وي.اوهركله چې د نابينا په ژبه كي د عيب نه كيدلو په وجه د هغه په كلام كي هيڅ خلل نشته.نود هغه شهادت اداكول به هم صحيح وي.

①النبيز داچه د ذكر شوي نابينا تحمل شهادت هم صحيح دي.اود شهادت اداكول هم صحيح دي.او مانع شهادت يعني د مشهود عليه ( مدعى عليه) نه پيژندل منتفي دي.خكه چې نابينا ته د مشهود عليه نسب بيانولو سره د مشهود عليه پيژندګلو( او شناخت) كيږي.مثلاً نا بينا ته اووئيلي شي.چه د فلان بن فلان لپاره په فلان بن فلان مدعى عليه باندي ګواهي وركړه.نو په دي نسب بيانولو سره به نابينا مدعى عليه اوپيژني.لكه څنګه چې په مړي باندي ګواهي ور كاوه كي كيږي.مثلاً د مړي قرضخواهانو دعوه اوكړله.او ګواه ئې پيش كړل.نود ګواه لپاره مړي ارخ ته اشاره كول ممكن نه دي.نوهغه په دي طريقه ګواهي وركولي شي.چه د مدعئ په فلان بن فلان مړي باندي دومره قدري قرضه ده.بهرحال كله چې د ذكرشوي بينا تحمل شهادت او ادائي شهادت دواړه صحيح دي.او مانع د شهادت منتفي دي.نود ذكر شوي نابينا ګواهي قبلولو كي هيڅ باك نشته.

**وَلَنَا أَنَّ الْأَدَاءَ يَفْتَقِرُ إِلَى التَّمْيِيزِ بِالْإِشَارَةِ بَيْنَ الْمَشْهُودِ لَهُ وَالْمَشْهُودِ عَلَيْهِ،** او زمونږ دليل دادي.چه، ،ادا، ، د مدعى او مدعى عليه په منځ كي اشاري سره امتياز ( فرق) كاوه ارخ ته محتاج ده. **وَلَا يُمَيِّزُ الْأَعْمَى إِلَّا بِالنَّغْمَةِ،** او نابينا د آواز نه بغير امتياز ( فرق) نشي كولي. **وَفِيهِ شُبْهَةٌ يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهَا بِجِنْسِ الشُّهُودِ** او په آواز كي يوه اشتباه ده.چه د هغې نه د جنس ګواهانو په ذريعه بچ كيدل ممكن دي.

**يفتقر** -حاجت بينبيږي-② **التمييز** -شناخت-③ **النغمة** -اواز-④ **التحرز** -بچ كيدل

**تشريح:-** زمونږ يعني د طرفينو رحمهما الله دليل دادي.چه د شهادت ادا كاوه لپاره ضروري دي.چه ګواه د مدعى او مدعى عليه په منځ كي اشاره سره امتياز ( فرق) اوكړي.او نابينا سړي صرف ددوي په آواز سره ددوي په منځ كي توپير كولي شي.په اشاره سره فرق نشي كولي.او چونكه د يو آواز د بل آواز سره مشابه وي.خكه به په آواز كي يو ډول اشتباه وي.اود جنس ګواه په ذريعه ددي اشتباه نه بچ كيدل هم ممكن دي.په دي طريقه چې د ستركو ( نظر) والا ډير ګواهان موجود دي.چه هغوي د مدعى اومدعى عليه په منځ كي اشاره سره فرق كولي شي.نوهركله چې د ستركو والا ګواهان موجود دي.نو نابينا كوم چې د مدعى او مدعى عليه په منځ كي اشاره سره فرق نشي كولي.هغه به ګواه جوړول څنګه صحيح وي.

**وَالنِّسْبَةُ لِتَعْرِيفِ الْغَائِبِ دُونَ الْحَاضِرِ** اود نسب بيانول د غائب د شناخت لپاره دي.د حاضر ( د شناخت دپاره) نه دي **فَصَارَ كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ** نود حدودو او قصاص پشان شو.

**تشريح:-** دا عبارت ديو سوال خواب دي.سوال دادي.چه د نابينا سړي دمدعى او مدعى عليه په منځ كي توپير كول د مدعى اومدعى عليه په نسب بيانولو سره ممكن دي.يعني صرف دهغوي په آواز به اكتفاء نشي كولي.بلكه د هغوي د نسب پوښتنه دي هم اوكړي شي.نو په نسب معلومولو سره نابينا ګواه د مدعى اومدعى عليه په منځ كي په آسانتيا سره فرق كولي شي.اوهركله چې نابينا ګواه د مدعى او مدعى عليه په منځ كي د نسب په ذريعه توپير كولي شي.نود نابينا ګواهي قبلول پكار دي؟



خواب[*] ددي خواب دادي.چه نسب بيانول د غائب ( غيرموجود) شناخت لپاره وي.د حاضر د شناخت لپاره نه وي.او په زيربحث مسئله كي مدعى اومدعى عليه دواړه حاضر دي.نود نسب بيانول به ددوي د شناخت لپاره څنګه وي.اوهركله چې د نسب بيانول ددوي د شناخت لپاره نشو.نو نابينا ګواه به ددوي دواړو په منځ كي توپير كاوه باندي هم قادر نه وي.اوهركله چې نابينا ګواه د مدعى او مدعى عليه په منځ كي په توپير كاوه باندي قادر نه دي.نود نابينا ګواهي به هم نشي قبلولي.خكه چې د شهادت ادا كاوه لپاره د مدعى او مدعى عليه په منځ كي توپير او امتياز كول ضروري دي.بهرحال ذكر شوي شيان د حدودو او قصاص پشان شو.نو لكه څنګه چې د نابينا ګواهي بالاجماع په حدودو او قصاص كي جائز نه ده.دغه ډول د حدودو او قصاص نه علاوه په نورو څيزونوكي به هم قبول نه وي.

①اوپه حدودو او قصاص كي د نابينا سړي د ګواهئ نه قبليدلو وجه دا ده.چه حدود او قصاص د شبهاتو په وجه لرې كيږي.اود نا بينا په حق كي آواز د مشاهدي قائم مقام وي.يعني بينا سړي ته چې د كومو څيزونو علم په مشاهده سره حاصليږي.نا بينا سړي ته د هغې علم په اوريدلو سره حاصليږي.نود نابينا سړي په حق كي اوريدل او آواز د مشاهدي او كتلو قائم مقام شو.اودا خبره منلي شوي ده.چه د اصل په نسبت قائم مقام كي يو ډول شبه وي.اودا هم منلي شوي ده.چه د شبهاتو په وجه حدود او قصاص نه ثابتيږي.بلكه ساقطيږي.نود نا بينا سړي په ګواهئ سره حدود

**وَلَوْ عَمِيَ بَعْدَ الْأَدَاءِ يَمْتَنِعُ الْقَضَاءُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ**[1] اوكه د شهادت ادا كاوه نه روسته نا بينا شو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز د قاضي فيصله وركول ممتنع شو. **لِأَنَّ قِيَامَ أَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ شَرْطٌ وَقْتَ الْقَضَاءِ** خكه چې د قاضي د قضاء په وخت د شهادت لپاره د اهليت موجود كيدل شرط دي. **لِصَيْرُورَتِهَا حُجَّةً عِنْدَهُ وَقَدْ بَطَلَتْ** خكه چې شهادت د قاضي د قضاء په وخت حجت شوي دي.حالانكه حجت باطل شو. **وَصَارَ كَمَا إِذَا خَرِسَ أَوْ جُنَّ أَوْ فَسَقَ** اودا داسې شوه.لكه چې كله ګواه ګونګا، مجنون، يا فاسق شي.

**حل اللغة:** ① **يمتنع** -منع كيږي-② **قيام** -وجود-③ **خرس** -ګونګاه شي-④ **جن** -ليوني شي

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.كه ګواه د شهادت ادا كاوه په وخت بينا وي.اود شهادت ادا كاوه نه روسته د قاضي د قضاء نه وړاندي نابينا شوي وي.نود طرفينو رحمهما الله په نيز ددي شهادت په بنا (بنياد) باندي قاضي لپاره حكم كول جائز نه دي. په دي اړه كي قاعده داده.چه د شهادت د تحمل ( ګواهي اوچتولو) نه روسته چې كوم شئ د شهادت ادا كاوه لپاره مانع دي.هم دغه شئ د شهادت ادا كاوه نه روسته د قاضي د قضاء لپاره مانع دي.نود شهادت د تحمل نه روسته نابينا كيدل،چونكه د طرفينو رحمهما الله په نيز د شهادت ادا كاوه نه مانع دي.په دي وجه د شهادت ادا كاوه نه روسته د ګواه نابينا كيدل به د طرفينو رحمهما الله په نيز د قاضي د قضاء لپاره مانع وي.

①د طرفينو رحمهما الله دليل دادي.چه د قاضي د فيصله ور كاوه په وخت په ګواه كي د ګواهئ اهليت كيدل شرط دي.خكه چې ګواهي د فيصلې په وخت حجت وي.حالانكه د فيصلې په وخت په نابينا ګواه كي د ګواهئ اهليت نه كيدلو په وجه د ګواهئ حجت كيدل باطل شو.اوهركله چې د ګواهئ حجت كيدل باطل شو.نو قاضي ته به د فيصلې اجازت هم نه وي.خكه چې قاضي د حجت نه بغير حكم او فيصله نشي صادركولي.اودا داسې ده.لكه چې ګواه د شهادت ادا كاوه نه روسته د قاضي د قضاء نه وړاندي ديوانه ( ليوني) شوي وي.يا ګونګا شوي دي.يا فاسق شوي وي.يعني لكه څنګه چې په دي صورتونوكي په ګواهانو كي د اهليت د بطلان په وجه قاضي لپاره حكم وركول جائز نه دي.دغه ډول د ګواه نابينا كيدلو په صورت كي به قاضي ته د فيصلې ور كاوه اجازت نه وي.

[1]) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في درر الحكام(٣٥٧\٤) وفتح القدير(٤٧٤\٦) ومجمع الأنهر(٢٧١\٣) ردالمحتار(٤٢١\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٣٥\٢)-

اوپه زیربحث مسئله کي د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د قاضي لپاره حکم کول جائز دی. اود ابویوسف رحمه الله په نیز د شهادت د تحمل نه روسته نابینا کیدل چونکه د شهادت ادا کاوه لپاره مانع نه دی.په دې وجه د شهادت ادا کاوه نه روسته نابینا کیدل به د قاضي د قضاء لپاره هم مانع نه وي.

د حضرت امام ابویوسف رحمه الله دلیل قیاس دی.یعنی لکه څنګه چې د شهادت ادا کاوه نه روسته د قاضي د قضاء نه وړاندې دګواه غائب کیدلو په صورت کي قاضي لپاره فیصله صادر کول جائز دی.دغه ډول د نابینا کیدلو په صورت کي به د قاضي قضاء جائز وي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتُوا أَوْ غَابُوا، په خلاف ددې کله چې ګواه مړ شوې وي. لِأَنَّ الْأَهْلِيَّةَ بِالْمَوْتِ قَدِ انْتَهَتْ ځکه چې د شهادت اهلیت د مرګ په وجه پوره شو. وَبِالْغَيْبَةِ مَا بَطَلَتْ اود غائب کیدلو په وجه باطل نشو. یا غائب شوې وي.

تشریح:- دا عبارت د امام ابویوسف رحمه الله د قیاس ځواب دی.حاصل دځواب دادې. چې د شهادت ادا کاوه نه پس،اود قاضي د قضاء نه وړاندې که ګواهان مړه شی.نود مرګ په وجه د هغوی اهلیت نه باطلیږی.بلکه د مرګ په وجه د هغوی اهلیت خپل انتهاء ته رسیږی.او شئ چې خپلې انتهاء ته په رسیدلو سره ثابتیږی.باطلیږی نه.بهرحال کله چې دمرګ په وجه د ګواهانو اهلیت باطل نشو.بلکه ثابت شوې دې،نو قاضي ددغه ګواهانو په ګواهئ سره فیصله ورکولې شی.دغه ډول د شهادت ادا کاوه نه روسته د ګواهانو په غائب کیدلو سره چونکه د ګواهانو اهلیت نه باطلیږی.په دې وجه د ګواهانو د غائب کیدلو باوجود قاضي ددوی په ګواهئ باندې فیصله صادر کولې شی.ددې په خلاف که د شهادت ادا کاوه نه روسته د قاضي د قضاء نه وړاندې ګواهان نابینا شو.نود نابینا کیدلو په وجه د هغوی اهلیت باطلیږی. او هرکله چې د نابینا اهلیت باطلیږی.نو قاضي ته به د هغوی په ګواهئ باندې د فیصلې ور کاوه اجازت هم نه وي.ځکه چې د فیصلې وخته پورې په ګواهانو کي د اهلیت موجود پاتې کیدل شرط دی.

### د مملوك د ګواهئ حکم

قَالَ وَلَا الْمَمْلُوكِ اود مملوك ګواهي هم جائز نه ده. لِأَنَّ الشَّهَادَةَ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ وَهُوَ لَا يَلِي نَفْسَهُ ځکه چې شهادت د ولایت د قبیلې څخه دې.او مملوك د خپل ذات ولی نه دې فَأَوْلَى أَنْ لَا تَثْبُتَ لَهُ الْوِلَايَةُ عَلَى غَيْرِهِ نود هغه لپاره په بل باندې په درجه اولی ولایت ثابت نه وي.

حل اللغة: ① المملوک-غلام-② الولایة-تصرف-③ یلی-تصرف کولې شی-④ یثبت-ثابتیږی

تشریح:- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.چه د نابینا پشان د مملوك (غلام او وینځې) ګواهي هم نه قبلیږی.امام مالك او امام شافعي رحمهما الله هم ددې قائل دی.

دلیل دادې.چه شهادت د ولایت د قبیلې څخه دې.یعنی لکه څنګه چې په ولایت کي ،،تنفیذ القول علی الغیر،، وي.دغه ډول په شهادت کي هم ،،تنفیذ القول علی الغیر،، وي.نوهرکله چې شهادت د ولایت د قبیلې څخه دې.نو شاهد(ګواه) هم هغه سړې کیدای شی،چاته چې د ولایت حق حاصل وي.او پاتې شوغلام،نو هرکله چې هغه ته پخپل ذات باندې د ولایت حق حاصل نه دې.نو په بل به په درجه اولی د ولایت حق حاصل نه وي.او هرکله چې غلام ته د ولایت حق حاصل نه دې.نو هغه ته به د ګواهئ ور کاوه حق څنګه حاصل وي.زموږ ددې قول تائید په حدیث سره هم کیږی. «عن ابن عباس رضی الله عنه قال لا تجوز شهادة العبد» ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلی دی.چه د غلام شهادت جائز نه دې.(عینی)

### د محدود فی القذف د ګواهئ حکم

وَلَا الْمَحْدُودِ فِي قَذْفٍ وَإِنْ تَابَ اود محدود فی القذف ګواهي هم جائز نه ده.اګرچه هغه توبه کړې وي.



تشریح:- حل اللغة:محدود فی القذف هغه کس دی.کوم کس چې په یو مسلمان باندې د زنا تهمت اولګولو.خو هغه ئې ثابت نکړې شو.نو ددې تهمت لګولو په سزاکي هغه ته اتیا(۸۰) کوړې لګولې شوې وي. ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.چه د محدود فی القذف ګواهي به نشي قبلولې.اګرچه هغه توبه اویاسي.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا} دلیل دا دې الله تعالی فرمائیلی دی.چاته چې حد لګولې شوې وي.د هغوی ګواهي کله هم مه قبلوئ.

تشریح:- دلیل دادې.چه الله تعالی د ،، محدود فی القذف،،په اړه کي فرمائیلی دی. ؟﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾[1] وجه د استدلال داده،چه الله جل جلاله لفظ د﴿أَبَدًا﴾ په صراحت سره ذکر کړې دې.او﴿أَبَدًا﴾ هغه ته وائي.چه د هغې هیڅ انتهاء نه وي.یعنی د ،،محدودین فی القذف،، ګواهي کله هم مه مقبلوئ.نود الله تعالی د لفظ ،،ابداً،، تصریح کول د شهادت د قبولیت منافی دې.یعنی د توبې نه روسته د محدود فی القذف ګواهي قبلول د ؟﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾منافی دې.اوهرکله چې د توبې نه روسته د محدود فی القذف ګواهي قبلول د ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾منافی دی.نود محدود فی القذف ګواهي به د توبه نه روسته هم نه قبلیږی.[2] د استدلال دویمه وجه داده چه په﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ﴾ کي د ،،هم،، ضمیر مرجع ،، محدودین فی القذف،،دی.یعنی د شهادت د عدم قبولیت حکم،، محدودین فی القذف،، لپاره دې.او ،،محدود فی القذف،،د توبه په وجه د ،، محدود فی القذف،،کیدلو نه خارجیږی.نوهرکله چې د توبه کاوه باوجود د ،، محدود فی القذف،،کیدلو نه نه خارجیږی.بلکه،، محدود فی القذف،،پاتې کیږی.او ،، محدود فی القذف،، لپاره د شهادت د عدم قبول حکم دې.نود توبه نه روسته به هم د ،، محدود فی القذف،، شهادت نه قبلیږی.

وَلِأَنَّهُ مِنْ تَمَامِ الْحَدِّ لِكَوْنِهِ مَانِعًا او ځکه چې د هغوی ګواهي نه قبلول هم د حد تتمه ده.ځکه چې شهادت رد کول هم هغوی د بهتان لګولو نه منع کونکې دې. فَيَبْقَى بَعْدَ التَّوْبَةِ كَأَصْلِهِ نود شهادت رد کول به د توبه نه روسته هم پاته وي.لکه څنګه چې اصل حد پاته کیږی.

تشریح:- دوهم دلیل دادې.چه د ،، محدود فی القذف،،ګواهي نه قبلول د حدقذف تتمه او تکمله ده.یعنی د قذف او بهتان اصل حد خو اتیا[80] کوړې دی.اود ګواهئ نه قبلیدل دا حدمکمل کوی.نو لکه څنګه چې د توبه نه روسته اصل حد پاته کیږی.اود توبه په وجه نه ساقطیږی.دغه ډول په اصل حد باندې قیاس کولو سره ددې تکمله او تتمه یعنی د شهادت عدم قبولیت به هم پاته کیږی.اود توبه په وجه به نه ساقطیږی.پاتې شوه دا خبره،چه د ګواهئ نه قبلیدل،د حد قذف تتمه ګرځولې شوې ده؟ نو ددې ځواب دادې.چه لکه څنګه حد قذف، قاذف راروان وخت لپاره د بهتان لګولو نه منع کوی.دغه ډول دهغه ګواهي ردکول هم ددغه ډول بهتان لګولو نه منع کوی.البته دومره توپیر دې.چه په اصل حد(کوړو) سره د قاذف بدن ته تکلیف رسیږی.او په شهادت رد کیدلو سره د هغه زړه ته تکلیف رسیږی.او قاذف په بهتان لګولو سره پخپله ژبه د مقذوف زړه دردمند کړې دې.په دې وجه د هغه د ژبې د جرم موافق هغه ته د حد نه روسته دا سزا ورکړې شوه.چه د هغه شهادت قبول نکړې شی.

بِخِلَافِ الْمَحْدُودِ فِي غَيْرِ الْقَذْفِ په خلاف د ،، محدود فی غیر القذف،، لِأَنَّ الرَّدَّ لِلْفِسْقِ وَقَدِ ارْتَفَعَ بِالتَّوْبَةِ ځکه چې (د هغوی د ګواهئ ردکول) دفسق په وجه دی.او فسق د توبه په وجه لرې شو.

تشریح:- البته د ،، محدودین فی القذف،،نه علاوه نور فاسقان مثلاً د زناکار، غل او شرابی ګواهي د توبه نه روسته قبلولې شی.ځکه چې د ،، محدود فی القذف،،نه علاوه د نورو فاسقانو خلګو ګواهي د هغوی د فسق په وجه ردکولې شی.اود فاسق فسق په توبه سره زائل کیږی. نود فاسق ګواهي ردکیدل،د هغه د فسق په وجه دی.اود هغه فسق په توبه سره لرې شو.نود توبه نه روسته به د فاسق ګواهي قبلولې شی.حاصل داچه د ،، محدود فی القذف،،ګواهي نه قبلیدل،د حد قذف تتمه ده.نو هرکله چې د توبه نه روسته اصل حد پاته کیږی.نود هغې تتمه به هم پاته کیږی.اود محدود فی القذف نه علاوه د نورو فاسقانو ګواهي ردکیدل د هیڅ یو حد تتمه نه ده؛ بلکه

صرف د هغوی د فسق په وجه دی.نو هر کله چې په توبه سره د هغوی فسق زائل شي.نود هغوی ګواهي به هم قبلولی شي.

وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ تُقْبَلُ إِذَا تَابَ لِقَوْلِهِ تَعَالَى او امام شافعي رحمه الله فرمائي. چې {إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا} اسْتَثْنَى التَّائِبَ {إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا} د توبه کونکو استثناء فرمائیلې شوې ده.

**تشريح:**- او حضرت امام شافعي، امام مالك، او امام احمد رحمهم الله فرمائیلي دي.چه د توبې نه روسته به د محدود في القذف ګواهي قبلولی شي.

د امام شافعي، امام مالك او امام احمد رحمهم الله دلیل دادې.چه الله تعالی د تائب (توبه کونکی) استثناء کړې ده.لکه فرمائیلي ئې دي.چه ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا.......﴾ پوره آیت داسې دی﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ۝ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا.......﴾ ددې حضراتو په نیز د استثناء تعلق ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ سره دې.یعنی د،، محدود في القذف،، ګواهي مه قبلوئ.خودا چې دوی توبه اوباسی.اود،، محدود في القذف،،توبه داده.چه د قذف په سلسله کې هغوی خپل تکذیب اوکړې.یعنی دا اووائي.چه ما په دروغه تهمت لګولې دې.حاصل دادې.چه د توبه نه روسته د هغوی ګواهي قبلولې شي.

قُلْنَا: الْإِسْتِثْنَاءُ يَنْصَرِفُ إِلَى مَا يَلِيْهِ وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى {وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ} مونږ خواب ورکوو.چه استثناء به هغه اړخ ته واپس کیږي.کوم چې دې ته متصل دې.او هغه د الله تعالی قول{وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ} دې. أَوْ هُوَ اسْتِثْنَاءٌ مُنْقَطِعٌ بِمَعْنَى لٰكِنْ یادا د،،لکن،، په معنی کې استثناء منقطع ده.

**حل اللغة:** ① ينصرف -اړولې شي-② يلي-نزدې وی-③ الوه-واپس کول-④ حدثت-پیدا شو

**تشريح:**- ① د دې خواب دا دې.چه استثناء هغه جملې سره متعلق وی.کومه جمله چې استثناء سره متصل وی.اود استثناء متصل﴿هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ دې.نو استثناء به﴿هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ سره متعلق وی.او په دې صورت کې به مطلب دا وی.چه د،، محدودین فی القذف،، ګواهي مه قبلوئ. او،، محدودین فی القذف،،فاسقان دی.مګر دا چې هغوی توبه اوباسی.یعنی د توبه نه روسته به هغوی فاسق نه پاتې کیږي.نو په توبه سره د هغوی فسق زائل شوې دې.د عدم قبول شهادت حکم نه دې زائل شوې. ② دوهم خواب دادې.چه حرف د،،الا،،د،،لکن،، په معنی کې استثناء منقطع ده.او استثناء منقطع ځکه ده.چه توبه کونکی په جنس فاسقین کې داخل نه دی.ګویا داسې اووئیلې شو.چه دا خلګ فاسقان دی.خو کومو خلګ چې توبه اوبشکله. هغوی فاسقان نه دی.

وَلَوْ حُدَّ الْكَافِرُ فِي قَذْفٍ ثُمَّ أَسْلَمَ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ وکه کافر ته حد قذف اولګولې شو.بیا هغه اسلام راوړلو.نود هغه شهادت به قبلولې شي. لِأَنَّ لِلْكَافِرِ شَهَادَةً فَكَانَ رَدُّهَا مِنْ تَمَامِ الْحَدِّ ځکه چې د کافر لپاره د شهادت حق وو.نود هغه د حد تتمه د هغه د شهادت مردود کیدل وو. وَبِالْإِسْلَامِ حَدَثَتْ لَهُ شَهَادَةٌ أُخْرَى نو په مسلمانیدلو سره هغه لپاره دوهم شهادت پیدا شو.

**تشريح:**- علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.که یو کافر ته حد قذف اولګولې شو.نود هغې نه روسته د کافرانو خلاف د هغه شهادت نه قبلیږي.خو که د حد قذف نه روسته هغه مسلمان شو.نود هغه شهادت به د کافر او مسلمان تولو خلاف قبلولې شي.ځکه چې کافر ته د کافرانو خلاف د ګواهۍ حق وی.او کوم کس ته چې د ګواهۍ ور کاوه حق وی.او هغه ته حد قذف لګولې شوې وی.نود هغه د شهادت مردود کیدل،د هغه د حد تتمه وی.نو هر کله چې دا،، محدود في القذف کافر،، مسلمان شو.نود اسلام په وجه د هغه لپاره د دویمې ګواهۍ حق پیدا شو.کوم چې د شهادت اولی مردوده غیر دې.یعنی د اسلام نه وړاندې کافر ته صرف د کافر په خلاف ګواهۍ ور کاوه حق وو.اود اسلام نه روسته هغه ته د کافر او مسلمان تولو خلاف د ګواهۍ ور کاوه حق حاصل دې.نو هر کله چې د حد قذف تتمه شهادت اولی مردوده ده.شهادت ثانیه نه ده.نود شهادت ثانیه نه قبلیدل به د هغه د حد تتمه نه وی.او هر کله چې د شهادت ثانیه نه قبلیدل د هغه د حد تتمه نشوه.نو شهادت ثانیه یعنی د اسلام نه روسته چې د کوم شهادت



حق حاصل شوې دې.هغه به قبلولې شي.

بِخِلَافِ الْعَبْدِ إِذَا حُدَّ ثُمَّ أُعْتِقَ نو مسلمانیدلو سره هغه لپاره د وهم شهادت پیدا شو لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ لِلْعَبْدِ أَصْلًا فَتَمَامُ حَدِّهِ بِرَدِّ شَهَادَتِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ په خلاف د غلام،کله چې هغه ته حد اولګولې شو.بیا هغه آزاد کړې شو.

**حل اللغة:** ① اعتق -ازاد شي-② تمام-پوره والې-③ ابوي-مورپلار-④ اجداد-جمع د جد،نیکه

**تشريح:**- ددې په خلاف غلام دې.چه کله هغه ته حد اولګولې شو.بیا هغه آزاد کړې شو.نود هغه ګواهي به نه قبلیږي.ځکه چې غلام ته قطعاً د شهادت حق نه حاصلیږي.نه د مسلمان په خلاف اونه د کافر په خلاف.بلکه هغه ته د آزادیدلو نه روسته دګواهۍ ور کاوه حق حاصل شوې دې.نو هر کله چې د آزادیدلو نه وړاندې غلام ته د شهادت حق نه وو.بلکه د آزادیدلو نه روسته د شهادت حق حاصل شوې دې.نود آزادیدلو نه روسته دهغه ګواهي ردکول به هم د هغه د حد قذف تتمه وی. لنډیز دا چې په حد قذف کې پوره سزا داده.چه دهغه ته اتیا(٨٠) کوړې ولګولې شي.اود هغه ګواهي ردکړې شي.نود ګواهۍ ردکول هم د سزا جزء شو.نود آزادیدلو نه روسته کله چې غلام ته د ګواهۍ حق اوشو.نود سزا پوره کیدلو لپاره به د هغه ګواهي ردکولې شي.

## د اولاد په حق کښې د ګواهۍ قبلولو حکم

قَالَ وَلَا شَهَادَةُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ وَوَلَدِ وَلَدِهِ اود پلار ګواهي د هغه د خوی او نمسی په حق کې نه قبلیږي. وَلَا شَهَادَةُ الْوَلَدِ لِأَبَوَيْهِ وَأَجْدَادِهِ اود خوی ګواهي د هغه د مورپلار او نیکونو په حق کې نه قبلیږي.

**تشريح:**- ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.چه د پلار ګواهي به د هغه د اولاد، او د اولاد اولاد په حق کې نشي قبلولې.اونه به د اولاد ګواهي د هغوی د مور پلار او نیکونو په حق کې قبلولې شي.

وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او اصل په دې کې د نبی کریم ﷺ دا قول دې.چه،، {لَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْوَلَدِ لِوَالِدِهِ وَلَا الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ د خوی ګواهي د هغه د پلار لپاره نه قبلیږي.اونه د پلار ګواهي د هغه د خوی دپاره( قبلیږي)، وَلَا الْمَرْأَةِ لِزَوْجِهَا وَلَا الزَّوْجِ لِامْرَأَتِهِ اونه د ښځې د هغې د میړه دپاره،اونه د میړه د هغه د بی بی دپاره، وَلَا الْعَبْدِ لِسَيِّدِهِ وَلَا الْمَوْلَى لِعَبْدِهِ وَلَا الْأَجِيرِ لِمَنِ اسْتَأْجَرَهُ} (١) اونه د غلام د هغه د آقا لپاره او نه د آقا د هغه دغلام دپاره،اونه د مزدور د هغه د مستاجر دپاره،،

**حل اللغة:** المراة -ښځه\بی بی-العبد-غلام-الاجير -مزدور-استاجر-په مزدورۍ نیولې وی

**تشريح:**- په دې اړه کې دا حدیث اصل دې.رسول الله ﷺ فرمائیلي دي.چه،، د خوی ګواهي د هغه د پلار په حق کې ،اود پلار ګواهي د هغه د خوی په حق کې نه قبلیږي،اونه د ښځې ګواهي د هغې د میړه په حق کې قبلیږي،اونه د میړه ګواهي د هغه د بی بی په حق کې قبلیږي،اونه د غلام ګواهي د هغه د آقا په حق کې قبلیږي،او نه د آقا ګواهي د هغه دغلام په حق کې قبلیږي،اونه د مزدور ګواهي په اجرت باندې د اخستونکی په حق کې قبلیږي،، په دې حدیث کې د ﴿ولا العبد لسيده﴾ په جمله باندې اعتراض دې.

اعتراض: په دې طریقه دې.چه د غلام لپاره د هیڅ چا په حق کې د شهادت حق نه وی.او هر کله چې د غلام لپاره دهیڅ چا په حق کې د شهادت حق حاصل نه دې.نو بیا د ﴿ولا العبد لسيده﴾ ذکر کاوه نه څه فائده ده.

خواب: ددې خواب دادې.چه ﴿ولا العبد لسيده﴾ ذکر د طرداً للباب په طور شوې دې.یعنی کله چې رسول الله ﷺ د

(١)قال الزيلعي غريب وهو في مصنف ابن ابي شيبة وعبدالرزاق من قول شريح قال عبدالرزاق ...عن شريح قال لا تجوز شهادة ابن لأبيه ولا أب لإبنه ولا مرأة لزوجها ولا زوج لإمرأته ولا شريك لشريكه في شئ بينهما لكن في غيره ولا آجر لمن أستأجره ولا عبد لسيده(نصب:٤\١٧٢)_

تهمت دمواضعو شمار اوكړو.نود عبدمع السيد ذكر ئې هم اوكړو.ګويا رسول الله ﷺ داسې وويل . كه بالفرض يوځائي كي د غلام ګواهي قبلولې شي.نود تهمت په وجه د هغه د آقا په حق كي نه قبليږي.بهرحال په دې حديث سره معلومه شوه.چه د پلار شهادت د هغه د اولاد ،اود اولاد اولاد په حق كي ،اود خوى شهادت د هغه د مورپلار او نيكونو په حق كي نشي قبلولې.

ولأن المنافع بين الأولاد والآباء متصلة ولهذا لا يجوز أداء الزكاة إليهم او خكه چې منافع د اولاد او پلار نيكونو په منځ كي يوځائي وي.په دې وجه هغوى ته زكاة وركول جائز نه دي. فتكون شهادة لنفسه من وجه نودا ګواهي به په يو اعتبار سره د خپل ذات لپاره وي. أو تتمكن فيه التهمة يا به په دې كي تهمت پيدا كيږي.

حل اللغة: المنافع -جمع د نفع ،فائده-متصلة-يوځائي-تتمكن-پيدا كيږي-التهمة-تهمت

تشريح:- په دې باندې عقلي دليل دادې.چه د اولاد او پلار نيكونو په منځ كي منافع يوځائي وي.يعنى د پلار مملوكه شي نه خوى،اود خوى مملوكه شي نه پلار نفع اوچتوى.او په عرف كي دا بد هم نه ګڼرلې كيږي.په دې وجه د پلار خپل خوى ته،اود خوى خپل پلار ته زكاة وركول جائز نه دي.نوكه پلار د خپل خوى يا نمسي په حق كي ګواهي وركوي.يا زوې د خپل پلار لپاره ګواهي وركوي.نو ددوى په منځ كي چونكه منافع متصل او مشترك دي.خكه به دا شهادت من وجه د خپل ذات لپاره وي.يا به كم ازكم په دې كي دا شبه وي.چه ګواه د خپلې نفع لپاره ګواهي وركړې ده.اودا خبره منلې شوې ده.چه ګواه له داسې ګواهي په كومې سره چې د هغه ذات ته نفع رسيږي.يا د نفع رسيدلو شبه وي.د تهمت په وجه نه قبليږي.نود پلار ګواهي د اولاد په حق كي اود اولاد ګواهي د مور پلار په حق كي نه قبليږي.

قال العبد الضعيف: والمراد بالأجير على ما قالوا التلميذ الخاص الذي يعد ضرر أستاذه ضرر نفسه ونفعه نفع نفسه، مصنف ﷫ فرمائي.چه د حضرات مشائخ په قول د اجير نه مراد هغه تلميذ خاص دي.كوم چې د استاذ ضرر خپل ضرر ګڼري.اود استاذ نفع خپله نفع ګڼري. وهو معنى قوله عليه الصلاة والسلام {لا شهادة للقانع بأهل البيت} (١) اود نبى كريم ﷺ د قول هم دا مطلب دې.چه كوم كس د يوكور د خلګو تابع وي.د هغه ګواهي د هغه كور والا خلګو لپاره نه قبليږي.

حل اللغة: التلميذ -شاګرد-ضرر-نقصان-القانع-تابع-البيت-كور

تشريح:- علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه په حديث كي د حضرات مشائخو د قول مطابق اجير نه مراد هغه خاص متعلم دې.چه هغه د خپل استاذ نقصان خپل نقصان،اود هغه نفع خپله نفع خيال كوي.او بعض حضرات فرمائي.چه د اجير نه مراد هغه تلميذ خاص دې.كوم چې د استاذ سره يوځائي خوراك څكاك كوي.اود هغه د كور يو فرد(نفر) جوړ شوې وي.اود هغه په اهل وعيال كي اوسيږي.اود هغه لپاره څه اجرت هم متعين نه وي.ګويا داسې تلميذ او شاګر ګواهي د هغه د استاذ په حق كي نه قبليږي.اوهم دا معنى د رسول الله ﷺ دحديث «لا شهادة للقانع بأهل البيت لهم» ده.يعنى كوم كس چې د يوكور د خلګو تابع وي.اوهم د هغوى كاروبار(خدمت) كوي.نود هغه ګواهي د هغه د كور والا خلګو لپاره نه قبليږي.

وقيل المراد بالأجير مسانهة أو مشاهرة أو مياومة بعض مشائخ فرمائيلي دي.چه د اجير نه مراد هغه نوكر دي.كوم چې سالانه، يا ماهانه،يا روزانه مقرر وي فيستوجب الأجر بمنافعه عند أداء الشهادة فيصير كالمستأجر عليها چې د ګواهۍ ادا كاوه په وخت د خپلو منافع په وجه د اجرت مستحق وي. نوداسې به شي.لكه هغه كس كوم چې د ګواهۍ ور كاوه لپاره په اجرت باندې اخستې شوې وي.

حل اللغة: ① مسانهة -سالانه-② مشاهرة-ماهانه-③ يصير-ګرځي-④ المستاجر-په اجرت باندې اخستونكې

(١) حديث ((لا شهادة للقانع الحديث)) من حديث عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده أخرجه ابوداود في الأقضية باب ١٦ رقم ٣٦٠٠_



تشريح:- بعض حضرات فرمائي.چه په حديث كي اجير نه مرادهغه اجيرخاص دې.كوم چې د سالانه يا ماهانه يا روزانه تنخواه باندې مقرر وي.او ددې اجير ګواهي به دمستاجر په حق كي خكه نشي قبلولې.چه هغه به د شهادت ادا كاوه په وخت د خپلو منافعو په عوض د اجر مستحق وي.يعنى د اجارې په موده كي د اجير پوره كار مستاجر لپاره وي.نوكله چې اجير د اجارې په موده كي ګواهي وركوي.او ګواهي وركول هم د هغه په عملونوكي يو عمل دې.نودا ګواهي وركول به هم مستاجر لپاره وي.او اجير به په دې باندې د مستاجر نه اجرت وصول كوي.نودا داسې شوه.لكه چې يوكس په ګواهي ور كاوه باندې په څه مال ور كاوه باندې مقرر كړې شوې وي.اوكوم كس چې په اجرت ور كاوه ګواهي ور كاوه باندې مقرر كړې شوې وي.د هغه ګواهي نه قبليږي.نو هغه اجير كوم چې سالانه، يا ماهانه، يا روزانه اجرت باندې مقرر كړې شوې وي.د هغه ګواهي به هم نشي قبلولې.البته د مستاجر په حق كي د اجيرمشترك ګواهي قبلولې شي.اجير مشترك هغه اجير دې.كوم چې د كار نه روسته د اجرت مستحق وي.لكه رنګريز، دهوبي،او درزي.د اجيرمشترك منافع د يو خاص سړي لپاره نه وي.بلكه د عامو خلګو لپاره وي.او اجير خاص هغه وي.كوم چې په مقرر موده كي خپل ذات مستاجر ته اوسپاري.اګرچه هيڅ كار ئې نه وي كړې.لكه مثلاً يوكس ديوكال يا يوه مياشت،يا د يو ورځې لپاره نوكر ساتلې شوې وي.هغه ته اجير واحد وائي.يعنى د يوكس اجير.

## د ښځې او ميړه يو بل لپاره د ګواهۍ وركولو حكم

قال: ولا تقبل شهادة أحد الزوجين للآخر او په ښځه ميړه كي د يو ګواهي د بل لپاره نشي قبلولې.

حل اللغة: ① الزوجين -ښځه خاوند-② الاملاک-مالونه-③ متميزة-جدا جدا-④ الحبس-قيد

تشريح:- ابو الحسين قدوري ﷫ فرمائي.چه په ښځه ميړه كي د يو ګواهي د بل لپاره نه قبليږي.امام مالك او امام احمد ﷭ هم ددې قائل دی.

وقال الشافعي رحمه الله: تقبل او امام شافعي ﷫ فرمائي.چه قبلولې شي. لأن الأملاك بينهما متميزة والأيدي متميزة خكه چې د دواړو املاك خپلو جلا جلا دی.او قبضې راتولې شوی دی. وهذا يجري القصاص والحبس بالدين بينهما په دې وجه د دواړو په منځ كي د قصاص او پور په وجه قيد كول جاري كيږي.

تشريح:- امام شافعي ﷫ فرمائي.چه قبلولې شي. دليل دادې.چه په ښځه ميړه دواړوكي د هريو ملك هم جلا دې.اود هريو قبضه هم راتوله ده.يعنى د هريو قبضه هم جلا ده.نو په دې دواړوكي به يو ته د بل په ملك اود بل په مال كي د تصرف اجازت نه وي.هم دا وجه ده.كه په زوجينوكي يوكس بل په ناحق باندې قتل كړو.نو په هغه به قصاص واجب وي.قاتل كه ميړه وي.اوكه ښځه وي.كه د يو په بل باندې قرضه وي.او قرضدار په اداكولوكي خامخا(هسې بيسه) سستي كوي.نود قرضخواه په وجه قرضدار قيدكولې شي.كه ښځه قرضدار او ميړه قرضخواه وي.يا ددې په عكس وي.او كوم سړې چې داسې وي.د هغه ګواهي د هغه د انډيوالان په حق كي قبلولې شي.لكه د يو رور ګواهي د بل رور په حق كي قبلولې شي.

ولا معتبر بما فيه من النفع اود هغه نفع هيڅ اعتبار نشته.كومه چې د احدالزوجين په ګواهۍ كي موجود ده. لثبوته ضمنا خكه چې هغه نفع ضمناً ثابتيږي. كما في الغريم لكه په قرضخواه كي ، إذا شهد لمديونه المفلس كله چې دخپل مفلس مديون لپاره ګواهي وركړي.

حل اللغة: ① معتبر -اعتبار-② النفع-فائده-③ مديون-قرضدار-④ المفلس-غريب

تشريح:- دا عبارت سره د يوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه په زوجينوكي د يو شهادت د بل لپاره قبلولو كي پخپله د ګواه نفع ده.خكه چې په دې دواړوكي هريو د خپل انډيوالان نفع خپله نفع شماري.يعنى كه په يوه خبره كي د ميړه نفع وي.نو ښځه هغه خپله نفع شماري.اوكه د ښځې نفع وي.نو ميړه هغه خپله نفع شماري.نو هركله چې په زوجينوكي كوم يوكس د بل لپاره ګواهي وركوي.نو په دې ګواهۍ سره به يقيناً د مشهود له نفع وي.او شاهد

چونكه د مشهود له ښځه يا ميړه دي.ځكه به په دې ګواهۍ سره پخپله شاهد ته هم نفع وي.او په كومه ګواهۍ سره چې پخپله شاهد ته نفع وي.هغه نشي قبلولې.نو په زوجينو كې د يو ګواهي د بل په حق كې قبلول پكار نه ده. ؟ د امام شافعي رحمه الله د اړخه ددې خواب دادې.چه په ګواهۍ سره دا نفع مقصود نه ده.بلكه دا نفع د ګواهۍ په ضمن كې ثابت شوې ده.اوكومه نفع چې ضمناً ثابت شي.د هغې اعتبار نه كيږي.نو په زوجينو كې د يو كس په ګواهۍ وركولو كې پخپله د شاهد كومه نفع ضمناً ثابت شوې ده.د هغې اعتبار به نه كيږي.او هر كله چې ددې نفع اعتبار نشته.نود أحدالزوجين ګواهي د بل لپاره قبلولو كې هيڅ نقصان نشته.او ددې مثال داسې دې.لكه چې قرضخواه د خپل مفلس قرضدار لپاره ګواهي وركړي.نو دا ګواهي قبلولې شي.اګرچه د قرضخواه لپاره هم په دې ګواهۍ كې د نفع موجود ده.ځكه چې په دې ګواهۍ كې د مفلس ( فقير) قرضدار لپاره د مال حكم اوشو.نود قرضخواه قرضه وصولول ممكن دي.خودا نفع يو ضمني شئ دې.د ګواهۍ مقصود نه دې.ځكه به ددې نفع اعتبار نه كيږي.

**وَلَنَا مَارَوَيْنَا** او زمونږ دليل هغه حديث دې.كوم چې مونږ روايت كړې دې. **وَلِأَنَّ الِانْتِفَاعَ مُتَّصِلٌ عَادَةً وَهُوَ الْمَقْصُودُ** او ځكه چې په عامه توګه (عام طور) باندې د ښځې ميړه منفعت متصل وي.اوهم دا مقصود دې. **فَيَصِيرُ شَاهِدًا لِنَفْسِهِ مِنْ وَجْهٍ أَوْ يَصِيرُ مُتَّهَمًا** نو هغه به من وجه خپل ذات لپاره ګواه وي.يا به متهم وي.

**حل اللغة:** ① الانتفاع-فائده اخستل-② عادة -په عادت كې -③ الغريم-قرضدار-④ متصل-مولښتي (پيوست)

**تشريح:-** دليل هغه حديث دې.كوم چې مونږ وړاندې روايت كړې دې.يعنى ﴿لا تجوز شهادة الوالد لولده ولا الولد لوالده ولا المرأة لزوجها ولا الزوج لامرأته﴾ دا حديث په صراحت سره دلالت كوي.چه د ښځې ګواهي د ميړه لپاره اود ميړه ګواهي د ښځې لپاره جائز نه ده. ② او عقلي دليل دادې.چه د زوجين په منځ كې منافع په عامه توګه (عام طور) باندې متصل وي.يعنى ميړه د ښځې د مال په وجه توانګر شمارلې كيږي.او ښځه د ميړه د مال په وجه مالداره شمارلې كيږي.هم په دې وجه الله تعالى فرمائيلي دي. ﴿إِنْ يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا فَاللَّهُ أَوْلَى بِهِمَا﴾ او وې موندلو تا لره فقير نو بيا نې مالداره كړې.،بعض حضرات فرمائي.مراد دادې.چه د حضرت خديجه رضي الله عنها په مال سره ئې ته مالداره كړې.ددې آيت نه معلومه شوه.چه دښځې په مالداره كيدلو سره ميړه مالداره شمارلې كيږي.بلكه ډير خله د ښځې او ميړه په منځ كې منافع كې دومره اتصال او ګډ وډى ( انبساط) وي.چه د اولاد اود موريلار ( د مال) په منځ كې نه وي.يعنې ميړه په ښځه باندې او ښځه په ميړه باندې دومره ايثار( قرباني)كوي.چه موريلار پخپل اولاد باندې او اولاد پخپل موريلار باندې دومره ايثار( اوقرباني) نه كوي.بلكه كله كله خو ميړه د خپلې ښځې خوشحالولو لپاره خپل موريلار سره دشمني كوي.او ښځه د خپل ميړه خوشحالولو لپاره خپل موريلار ناراضه كوي.بهرحال د زوجينو په منځ كې منافع متصل او مشترك وي.اود زوجيت رشتې نه نفع اخستل مقصود وي.نو هركله چې د زوجينو په منځ كې منافع متصل او مشترك وي.او نفع هم مقصود وي.نو په دوى كې ديو كس د بل لپاره ګواهي وركول من وجه خپل خان لپاره ګواهي وركول شو.يا هغه پخپل شهادت كې خپل ځان لپاره نفع حاصلولو سره متهم كيږي.او سړې چې خپل خان لپاره ګواهي وركړي.بيا هم د هغه ګواهي ردكولې ش.اوكه پخپله ګواهۍ كې متهم شي.بيا هم رد كولې شي.په دې وجه زوجينو كې د يو ګواهي د بل لپاره نه قبليږي.

**بِخِلَافِ شَهَادَةِ الْغَرِيمِ لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ عَلَى الْمَشْهُودِ بِهِ** په خلاف د قرضخواه د شهادت،ځكه چې هغه ته په مشهود باندې هيڅ ولايت نشته.

**تشريح:-** دا عبارت د امام شافعي رحمه الله د قياس خواب دې.حاصل د خواب دادې.چه قرضخواه ته په مشهود به باندې د ولايت هيڅ حق نشته.ځكه چې مشهود به د قرضدار مال دې.او قرضخواه د قرضدار په مال باندې د تصرف هيڅ اختيار نه وي.او كله چې قرضخواه ته د قرضدار په مال باندې د تصرف هيڅ حق نشته.نو هغه به په ګواهۍ كاوه كې متهم هم نه وي.او كله چې قرضخواه په ګواهۍ كې متهم نه وي.نود هغه ګواهي جائز او قابل قبول وي.ددې په خلاف سړې دې.چه دا په ښځه باندې نګران مقرر كړې شوې دې.هغه د ښځې په مال كې په عامه توګه



(عام طور) باندې تصرف كوي.نو ميړه د خپلې ښځې لپاره ګواهي ور كاوه كې متهم كيږي.اوهر كله چې ميړه پخپله ګواهۍ كې متهم دې.نود ښځې په حق كې به د هغه ګواهي هم قبول نه وي.

## د غلام او مكاتب په حق كښې د مولا د ګواهۍ حكم

**وَلَا شَهَادَةُ الْمَوْلَى لِعَبْدِهِ** اود آقا ګواهي د هغه د غلام په حق كې نه قبليږي.

**تشريح:-** ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي.چه د آقا شهادت پخپله د هغه د غلام په حق كې نشي قبلولې. په تيرشوي ① دليل كې ذكر شوې دا حديث ﴿ولا المولى لعبده﴾ دې.

**لِأَنَّهُ شَهَادَةٌ لِنَفْسِهِ مِنْ كُلِّ جِهَةٍ** دليل دا دې چې دا من كل وجه د هغه د ذات لپاره شهادت دې. **إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ** په دې شرط چې غلام باندې قرضه نه وي.

**حل اللغة:** ① دين -قرض-② الحال-حالت-③ مراعى-لحاظ كړې شوې-④ مكاتب-مكاتب غلام

**تشريح:-** او دوهم عقلي دليل دادې.چه د آقا د خپل غلام په حق كې ګواهي وركول پخپله د آقا لپاره من كل وجه شهادت دې. ځكه كه په غلام باندې قرضه نه وي.نود مولا د هغه په حق كې ګواهي وركول من كل وجه خپل خان لپاره ګواهي وركول ده.ځكه چې غلام هم د مولا وي.اود غلام په ملك كې چې څه هم وي.هغه د مولا وي.نوهر كله چې د غلام اود غلام د ملكيت د ټولو مالك مولا دې.نود مولا د خپل غلام لپاره ګواهي وركول پخپله خپل خان لپاره ګواهي وركول دى.اودا خبره منلې شوې ده.چه د ګواه خپل خان دپاره،،من كل الوجوه،، ګواهي وركول هم ناجائز دى.نو هر كله چې من كل وجه او من وجه دواړه شان د ګواه خپل خان لپاره ګواهي وركول ناجائز دى.اود آقا د خپل غلام په حق كې ګواهي ور كاوه سره دا لازميږي.نود مولا به د خپل غلام په حق كې ګواهي وركول ناجائز وي.اوكه هغه ګواهي وركړله.نو بيا به هم قاضي هغه نه قبلوي.

**أَوْ مِنْ وَجْهٍ إِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ** يا من وجه ( خپل ذات لپاره شهادت دې) كه په غلام باندې قرضه وي **لِأَنَّ الْحَالَ مَوْقُوفٌ مُرَاعًى** ځكه چې د غلام حالت موقوف قابل لحاظ دې.

**تشريح:-** اوكه غلام باندې د خلكو قرضه وي.نود مولا د هغه په حق كې ګواهي وركول من وجه خپل خان لپاره ګواهي وركول دى. ځكه چې د قرضدار غلام حالت انجام ته په كتلو باندې موقوف دې.يعنى دا هم كيداې شي.چه قرضخواه حضرات پخپله قرضه كې دا غلام خرڅ كړي.نو په دې صورت كې به دا غلام د قرضخواهانو وي.اود مولا لپاره به اجنبى وي.اود اجنبى كيدلو په وجه به د مولا دده په حق كې ګواهي وركول خپل خان لپاره ګواهي وركول نه وي.اودا هم كيداې شي.چه مولا پخپله د قرضخواهانو قرضه اداكړي.اودا غلام ( خالص) د مولا پاتې شي.نو په دې صورت كې چونكه دا غلام (صرف) د مولا دې.په دې وجه د مولا د هغه په حق كې ګواهي وركول به خپل خان لپاره ګواهي وركول وي.ځكه چې غلام اود غلام په ملك كې چې څه هم دى.هغه واړه د مولا دى.بهرحال د غلام د قرضخواه كيدلو په صورت كې په يو اعتبار سره د آقا د خپل قرضدار غلام په حق كې ګواهي وركول خپل خان لپاره ګواهي وركول دى.او په يو اعتبار سره خان لپاره ګواهي وركول نه دى.نود دواړو لحاظ به كولې شي.او ونيلې به شي.چه د قرضدار او غلام په حق كې د مولا ګواهي وركول من وجه خپل خان لپاره ګواهي وركول دى.

**وَلَا لِمُكَاتَبِهِ لِمَا قُلْنَا** اود مولا ګواهي د هغه د مكاتب لپاره هم جائز نه ده.د هغه دليل په وجه كوم چې مونږ بيان كړو

**تشريح:-** اود آقا شهادت د هغه د مكاتب په حق كې هم نه قبليږي.ځكه چې د مكاتب حالت هم انجام ته په تلو باندې موقوف دې.ځكه كه مكاتب بدل كتابت اداكړو.نو هغه به د مولا لپاره اجنبى وي.اود هغه په حق كې به د مولا شهادت قبول وي.اوكه هغه بدل كتابت ادا نكړې شو.نو هغه به د مولا رقيق او غلام وي.اود هغه په حق كې به د مولا شهادت وركول شهادت لنفسه وي.بهرحال په يو صورت كې شهادت لنفسه لازميږي.او په يو صورت كې نه لازميږي.نود دواړو اعتبار كاوه سره د آقا د خپل مكاتب په حق كې ګواهي ور كاوه سره من وجه پخپل حق كې

ګواهي وركول لازميږي.او وړاندې تير شوي دي.چه دا ناجائز او قابل قبول دي.ځكه به د آقا شهادت د هغه د مكاتب په حق كې نه قبليږي.

**وَلَا شَهَادَةُ الشَّرِيكِ لِشَرِيكِهِ فِيمَا هُوَ مِنْ شَرِكَتِهِمَا** اود يو شريكوال ګواهي د هغه د دوهم شريكوال لپاره په داسې څيزكې جائز نه ده.كوم چې ددوی دواړو په شركت كې دي. **لِأَنَّهُ شَهَادَةٌ لِنَفْسِهِ مِنْ وَجْهٍ لِاشْتِرَاكِهِمَا** ځكه چې دا من وجه ددوی د ذات لپاره شهادت دي.ځكه چې د دواړو شركت دي.

**تشريح:**- اوكه په شريك مال كې يو شريك په چا څه دعوه اوكړله.او بل شريك د هغه لپاره ګواهي وركړله.نودا ګواهي به هم قبول نه وي.ځكه چې مال مدعی به د مدعی او شاهد په منځ كې مشترك دي.نود شاهد شهادت به د مال په څه برخه كې پخپله د خپل ځان لپاره وي.اودا باطل دي.اوهر كله چې د بعض مال شهادت باطل شو.نود پوره مال شهادت به هم باطل وي.ځكه چې شهادت يو دي.په دې كې تجزی ( ټكړې او حصې) نه كيږي.چه يو شهادت په بعض مال كې صحيح وي.او په بعض مال كې باطل وي.

**وَلَوْ شَهِدَ بِمَا لَيْسَ مِنْ شَرِكَتِهِمَا تُقْبَلُ لِانْتِفَاءِ التُّهْمَةِ** اوكه په داسې څيزكې ئې ګواهي وركړله.كوم چې ددوی دواړو په شركت كې نه دي.نو قبلولې به شي.ځكه چې هيڅ تهمت نشته.

**حل اللغة:** ① **تقبل** -قبلولې به شي-② **الانتفاء**-نشتوالی-③ **اخ**-ورور-④ **عم**-تره

**تشريح:**- اوكه يو شريك د خپل شريك لپاره په داسې شئ كې شهادت وركړو.په كوم كې چې دده شراكت نشته.نودا ګواهي به قبول وي.ځكه چې په دې صورت كې شهادت لنفسه نه لازميدلو په وجه به شاهد متهم نه وي.او هر كله چې شاهد پخپل شهادت كې متهم نشو.نود هغه شهادت به هم قبلولې شي.

### د رور او اكا (تره) په حق كښې د ګواهئ د حكم

**وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَخِ لِأَخِيهِ وَعَمِّهِ** اود سړی شهادت د هغه د رور او اكا (تره) لپاره قبلولې شي. **لِانْعِدَامِ التُّهْمَةِ** ځكه چې تهمت معدوم دي.

**تشريح:**- ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه د يو رور شهادت د بل رور لپاره اود وراره شهادت د هغه د اكا (تره) لپاره اود ولادت د قرابت نه علاوه په ټولو قرابتونو كې د يو شهادت د بل لپاره قبلولې شي.

**لِأَنَّ الْأَمْلَاكَ وَمَنَافِعَهَا مُتَبَايِنَةٌ** دليل دا دې چې املاك او منافع جلا جلا دی. **وَلَا بُسُوطَةَ لِبَعْضِهِمْ فِي مَالِ الْبَعْضِ** او بعض ته د بعض په مال كې هيڅ اتصال ( ګډون) نشته.

**حل اللغة:** ① **الاملاک** -جمع د ملك ،مملوك -② **متباينة**-مختلف-③ **بسوطة** -بغير تكلفه-④ **منافع**-فائدې

**تشريح:**- دليل دادې.چه د ولادت نه علاوه د ټولو قرابتونو املاك او منافع جلا جلا وی.او بلا تكلفه ( په آزادئ سره) د يو بل په مال كې د تصرف اختيار هم نه وي.نو هر كله چې ددوی املاك او منافع جلا جلا دی.او خپل منځ كې د يو بل په مال كې بلا تكلفه د تصرف اختيار هم نه وي.نو په دوی كې كه يو كس د بل په حق كې ګواهي وركړله.نو ګواه به پخپله ګواهئ كې متهم نه وي.او هر كله چې ګواه پخپله ګواهئ كې متهم نشو.نود هغه ګواهي به قبلولې شي.

### د مخنث ( هيجړا) د ګواهئ حكم

قَالَ **وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْمُخَنَّثِ** اود مخنث ( هيجړا) ګواهي مقبول نه ده. **وَمُرَادُهُ الْمُخَنَّثُ فِي الرَّدِيءِ مِنَ الْأَفْعَالِ لِأَنَّهُ فَاسِقٌ** اود مصنف رحمه الله مراد هغه مخنث دي.كوم چې لواطت كوي.ځكه چې هغه فاسق دي.

**حل اللغة:** ① **المخنث** -هيجړا-② **الردئ**-لواطت-③ **لاتقبل**-نشی قبلولې-④ **الافعال**-جمع د فعل، كار

**تشريح:**- ابوالحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه د مخنث( هيجړا) ګواهئ به هم نشی قبلولې.خود مصنف رحمه الله مراد د



مخنث نه هغه مخنث دې.كوم چې خلګو ته خپل ځان سره په لواطت باندې قدرت وركوی.او په زيب وزينت كې د ښځو مشابهت اختياروی.اود ښځو پشان په نخرو نخرو( او ناز و انداز) سره ګرځي.اود زنانو په لهجه كې خبرې كوی.دداسې مخنث د ګواهئ نه قبليدلو وجه داده.چه داسې سړی فاسق دې.( لكه د نبی كريم صلی الله عليه وسلم ارشاد دې. «لعن الله المخنثين من الرجال» الله تعالی دې په مخنث سړو باندې لعنت اوكړی) او وړاندې تير شوی دی.چه د فاسق ګواهي نه قبليږی.نود مخنث ګواهي به هم نه قبليږی.

**فَأَمَّا الَّذِي فِي كَلَامِهِ لِينٌ وَفِي أَعْضَائِهِ تَكَسُّرٌ فَهُوَ مَقْبُولُ الشَّهَادَةِ** او پاتې شو هغه سړې د چا په خبروكې چې نرمی او په اندامونوكې مورزاده (پيدائشی) لچك ( سستی) وی.نود هغه ګواهي مقبول ده.

**حل اللغة:** ① **كلام** -خبره-② **لين**-نرمی-③ **اعضاء**-جمع د عضو ،اندام-④ **تكسر**-سستی

**تشريح:**- البته كه د يوكس په خبرو اترو كې فطری نرمی او په اندامونوكې مورزاده (پيدائشی) او قدرتی لچك ( اود ښځو انداز) وی.او په څه ګنده فعل سره مشهور نه وی.نود هغه ګواهي به نشی قبلولې.

### د نائحه او مغنيه د ګواهئ حكم

**وَلَا نَائِحَةٍ وَلَا مُغَنِّيَةٍ لِأَنَّهُمَا يَرْتَكِبَانِ مُحَرَّمًا** اود ( پيشې په طور) ژړيدونكې ښځې اود لوبو( ګانو) ويونكې ښځې شهادت به نه قبليږی.

**حل اللغة:** ① **نائحة** -ويركونكې-② **مغنية**-سندرغاړې-③ **ترتكبان**-صيغه تثنيه ، ارتكاب كوی-④ **محرما**-حرام

**تشريح:**- ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه د پيشې په طور ژړيدونكو او ګانې (لوبې) ويونكو ښځو ګواهي به نشی قبلولې.ځكه چې دا دواړه ښځې د فعل حرام مرتكب دی.

**فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {نَهَى عَنِ الصَّوْتَيْنِ الْأَحْمَقَيْنِ النَّائِحَةِ وَالْمُغَنِّيَةِ}** (۱) دليل دا دې چې دا دواړه ښځې د فعل حرام مرتكب دی.ځكه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د دوې (دوه) بې وقوفه آوازونو يعنی د ژړا او لوبو آوازونو نه منع فرمائيلې ده.

**حل اللغة:** ① **نهی** -منع كړې ده-② **الصوتين**-تثنيه دصوت، اواز-③ **الاحمقين**-تثنيه د داحمق، بيوقوف

**تشريح:**- اودا فعل ځكه حرام دې.چه رسول الله صلی الله عليه وسلم ددې دواړو بې وقوفو آوازونو نه منع فرمائيلې ده.نو هر كله چې دا دواړه آوازونه حرام دی.او ذكر شوو ښځو ددې آوازونو ارتكاب ( جرم) كړې دې.نودا دواړه ښځې فاسق شوې.اود فاسق ګواهي نه قبليږی.نو ددې ښځو ګواهي به هم نشی قبلولې.

### د شرابی اود مارغانو ساتونكو د ګواهئ حكم

**وَلَا مُدْمِنِ الشُّرْبِ عَلَى اللَّهْوِ** اود لهو ( عبث) په طور د هميشه شراب څكونكی ګواهي به هم نشی قبلولې **لِأَنَّهُ ارْتَكَبَ مُحَرَّمَ دِينِهِ** ځكه چې هغه دداسې شئ ارتكاب كړې دې.كوم چې د هغه په دين كې حرام دې.

**حل اللغة:** ① **مدمن** -عادتی-② **الشرب**-شراب-③ **اللهو**-عبث، فضول-④ **محرم**-حرام

**تشريح:**- ابوالحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چه د لهو( عبث) په طور باندې د پيوسته شراب څكونكی ګواهي هم نه قبليږی.ځكه چې شراب څښل حرام دی.نودا سړې د حرام مرتكب شو.اود حرام مرتكب فاسق وی.اود فاسق ګواهي نه قبليږی.نود هغه ګواهي به نه قبليږی.ابو الحسين قدوری رحمه الله د ،،ادمان،،(هميشه څښلو ) شرط ځكه لګولې دې.چه دده شرابی كيدل خلګو ته ښكاره شی.ځكه چې كوم كس پخپل كور كې شراب څښلو باندې متهم دی.اود خلګو په وړاندې دا فعل نه دې ښكاره شوې.نود هغه ګواهي به قبول وی.اګرچه په كوركې شراب څښل هم ګناه كبيره ده.البته كه په خلګو باندې دده شراب څښل ښكاره شی.يا هغه شراب اوڅكی.اود نشې په حالت كې بهر ته راوځی.او ماشومان د هغه تمسخر اوكړی.نو چونكه داسې قسمه سړې د د دروغو نه پرهيز نه كوی.ځكه به د هغه

(۱) من حديث جابر بن عبدالله رضی الله عنه أخرجه الترمذی فی الجنائز باب ۲۵ رقم ۱۰۰۵)_

ګواهي نه قبليږي.

وَلَامَنْ يَلْعَبُ بِالطُّيُوْرِ ونه د هغه كس ګواهي څوك چې مارغانو سره بازي كوي. لِأَنَّهُ يُوْرِثُ غَفْلَةً ځكه چې مارغانو سره بازي كول غفلت پيدا كوي. وَلِأَنَّهُ قَدْ يَقِفُ عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ بِصُعُوْدِهِ عَلَى سَطْحِهِ لِيُطَيِّرَ طَيْرَهُ اوځكه چې د مارغانو الوځونكي د ښځو واجب الستر اندامونو باندې نظر پريوځي. كله چې مارغانو الوځولو لپاره د خپلې كوټې چت ته اوخيژي.

حل اللغة: ① يلعب - بازي كوي-الطيور-جمع د طير، مرغۍ-يقف-خبريږي-صعود-ختل يورث-پيدا كوي-عورات-جمع د عورة د پردې اندام-سطح-چت-ليطير-الوزوي

تشريح:- او مارغانو سره د لوبو كونكي ګواهي به هم نه قبليږي. ① ځكه چې مارغان الوځول په سړي كې غفلت پيدا كوي. اود غفلت په وجه به په ده باندې د نسيان غلبه وي. اود نسيان په وجه به په مشهود به كې د كمې زياتې امكان پيدا كيږي. او ددې امكان په موجودګۍ كې ګواهي نه قبليږي. نود مارغانو الوځولو ګواهي به نه قبليږي. ② دوهم دليل دادې. چه مارغان الوځونكي د مارغانو الوځولو لپاره د كوټې په چت باندې خيژي. نو خامخا به د هغه نظر په نامحرمه ښځو باندې پريوځي. او نامحرمه ښځو ته كتل حرام دي. نود حرامو د مرتكب كيدلو په وجه به د هغه شهادت نه قبليږي.

وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: وَلَامَنْ يَلْعَبُ بِالطُّنْبُوْرِ او په بعضو نسخوكي داسې دي. چه نه د هغه كس ګواهي قبليږي. څوك چې ستار (يا طنبل) سره بازي كوي. وَهُوَ الْمُغَنِّي او هغه مغني (بازي ويونكي) دي.

حل اللغة: الطنبور -ستار-② كبيرة-لويه ګناه-③ يجمع-جمع كوي-④ يغني-سندرې اوروي

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د قدوري په بعض نسخوكي د ،،طيور،، په ځاي د ،،طنبور،، لفظ دې. او طنبور يو ډول باجه ده. اوس به مطلب دا وي. چه په ستار (يا طنبل) سره بازي كونكي ،،غيرمقبول الشهادت،، دې. او په دنبوره (ستار) سره بازي كونكي مغني وي. نوګويا دا ئې اوئيل. چه د مغني (لوبو ويونكي) ګواهي مقبول نه ده. خو ددې نسخې په بناء باندې د راروان عبارت ﴿ولا من يغني للناس﴾ راوړلو هيڅ اړتيا نه وو.

**د مغني يا مغنيه اود مرتكب كبيره د ګواهۍ حكم**

قَالَ وَلَامَنْ يُغَنِّي لِلنَّاسِ اود هغه كس ګواهي هم مقبول نه ده. څوك چې خلګو ته ګانې (لوبې) اوروي. لِأَنَّهُ يَجْمَعُ النَّاسَ عَلَى ارْتِكَابِ كَبِيْرَةٍ ځكه چې هغه خلګ په كبيره (ګناه) باندې راجمع كوي.

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه كوم سړې نورو خلګو ته ګانې اوروي. د هغه ګواهي به نشي قبلولې. لكه څنګه چې د اوريدونكو ګواهي نه قبليږي. ځكه چې دا سړې خلګ په كبيره ګناه باندې راجمع كوي. او په كبيره ګناه باندې د خلګو راجمع كول پخپله كبيره ګناه ده. اود كبيره ګناه د مرتكب ګواهي نه قبليږي. نو خلګو ته د ګانو اوروونكي ګواهي به هم نشي قبلولې.

وَلَامَنْ يَأْتِي بَابًا مِنَ الْكَبَائِرِ الَّتِي يَتَعَلَّقُ بِهَا الْحَدُّ لِلْفِسْقِ اود هغه كس ګواهي هم مقبول نه ده. څوك چې د داسې كبيره ګناه ارتكاب اوكړي. كوم سره چې حد متعلق كيږي. ځكه چې داسې كس فاسق دې.

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. كه يو كس د داسې كبيره ګناه ارتكاب اوكړو په كوم سره چې حد متعلق كيږي. لكه سرقه، زنا وغيره. نود هغه ګواهي به هم نه قبليږي. ځكه چې د داسې ګناه د ارتكاب په وجه دا سړې فاسق شوې دې. اود فاسق ګواهي نه قبليږي. نود هغه ګواهي به هم نه قبليږي.

د ګناه كبيره تفسير ۞ د ګناه كبيره په تفسيركې د عالمانو اختلاف دې. ① بعض حضرات فرمائي. چه كبائر اووه دي. كوم چې رسول الله ﷺ په يو مشهورحديث كې ذكر كړي دي. الله تعالى سره څوك شريكول. د مور پلار نافرماني كول. په ناحقه څوك قتلول. مومن باندې تهمت لګول. شراب څكل. زنا.. د ډګر جنګ نه تيخته اختيارول. اوچا ور سره د سود خوراك هم ګډ كړي دې. ② بعض حضرات فرمائي. هر هغه ګناه چې په هغې باندې حد وارد



شوې وي. هغې ته كباره ګناه وائي. ③ او بعض فرمائي. چه كوم كار د مسلمانانو په نيز ناخوښه او معيوب وي. او په هغې كې د الله تعالى د دين د حرمت سپكاوې كيږي. هغه كبيره ګناه ده. ④ او بعض فرمائي. چه په يو ګناه باندې اصرار (هميشوالې) كول كبيره ګناه ده. صحيح خبره داده. چه ګناه يو اضافي شئ دې. يعني هره يوه ګناه داسې ده. چه د هغې نه باندې (پورته) هم ګناه شته. او لاندې هم ګناه شته. نود لاندې ګناه په اعتبار سره به هغې ته كبيره وئيلې شي. اود پورتنۍ ګناه په اعتبار سره به هغې ته صغيره وئيلې كيږي.

قَالَ وَلَامَنْ يَدْخُلُ الْحَمَّامَ مِنْ غَيْرِ مِئْزَرٍ ونه به د هغه كس ګواهي قبليږي. څوك چې حمام (غسل خانې) ته د تهبند (لنګ) نه بغير داخليږي. لِأَنَّ كَشْفَ الْعَوْرَةِ حَرَامٌ ځكه چې د شرمګاه ښكاره كول حرام دي.

حل اللغة: يدخل -داخليږي-② الحمام-د ګرمو اوبو خانې-③ ازار-لنګ-④ كشف-ښكاره كيدل

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه كوم كس د ازار (لنګ) نه بغير بربنډ حمام ته داخليږي. يعني ستر د عورت ښكاره كوي. او خې. د هغه ګواهي به هم نه قبليږي. ځكه چې شرمګاه اود واجب الستر بدن ښكاره كول حرام دي. اود حرام مرتكب فاسق وي. اود فاسق ګواهي نه قبليږي. نود هغه ګواهي به هم نه قبليږي. او رسول الله ﷺ فرمائيلي دي. ﴿لعن الله الناظر والمنظور اليه﴾ يعني،، الله تعالى دې شرمګاه ته په كتونكي او دچا شرمګاه ته چې اوكتلې شو. دواړو باندې لعنت اوكړي،، حاصل داچه شرمګاه ښكاره كونكې د لعنت مستحق دې. او شهادت يو كرامت (اوعزت) دې. نو كوم كس چې د لعنت مستحق دې. هغه د شهادت نشي مستحق كيدې. د حمام نه د غسل هغه خانې مراد دې. كوم چې په هوټل كې تيارولې شي. او بيا سړې اوښځه هر قسمه سړې راځي. او په هغې كې غسل كوي.

وَيَأْكُلُ الرِّبَا أَوْ يُقَامِرُ بِالنَّرْدِ وَالشِّطْرَنْجِ يا سود خوري يا په تاش اوشطرنج سره جواري كونكې وي. (نود هغه ګواهي به هم نه قبليږي) لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مِنَ الْكَبَائِرِ ځكه چې دا هره يوه كبيره (ګناه) ده. وَكَذٰلِكَ مَنْ تَفُوْتُهُ الصَّلَاةُ لِلْاِشْتِغَالِ بِهِمَا او دغه ډول د هغ كس ګواهي به نه قبليږي. د چا لمونځ چې ددې دواړو په وجه فوت كيږي.

يأكل -خوري-② الربا-سود-③ النرد-تاش-④ تفوت-قضا كيږي

تشريح:- ابوالحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه د سود خوړونكي (سود خور) ګواهي به هم نه قبليږي. او تاش اوشطرنج سره د جوارۍ كونكي ګواهي به هم نه قبليږي. دليل دادې. چه سود خوري او جواري دواړه كبيره ګناه دي. او وړاندې تيرشوي دي. چه د كبيره ګناه د مرتكب ګواهي نه قبليږي. نود سودخور او جوارګر ګواهي به هم نه قبليږي.

اوتاش سره بازي كونكې بغير د شرط نه مردود الشهادة دې. ځكه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي ﴿ملعون من لعب بالنرد﴾ يعني تاش سره بازي كونكې سړې ملعون دې. او ملعون سړې څنګه عادل كيداې شي. نوهركله چې نرد سره بازي كونكې ملعون او غيرعادل دې. نود هغه ګواهي به هم نشي قبلولې. ځكه چې ګواهي د عادل قبلولې شي. د غير عادل نشي قبلولې.

تاش يو ډول لوبه ده. كوم چې اردشير بن بابك د ايران بادشاه ايجاد كړې وه. او تاش سره د بازۍ كونكي ګواهي به هغه وخت مردود وي. كله چې په دريو خبروكې يوه خبره اوموندې شي. ① يا خو تاش سره جواري كوي. ② يا په تاش كې د مشغوليدلو په وجه لمونځ فوت كيږي. ځكه چې دري شيان د كبائرو څني دي.

فَأَمَّا مُجَرَّدُ اللَّعِبِ بِالشِّطْرَنْجِ فَلَيْسَ بِفِسْقٍ مَانِعٍ مِنَ الشَّهَادَةِ مَسَاغًا، پاتې شو صرف تاش سره بازي كونكې، نو هغه داسې فاسق دې. چه كوم چې مانع د شهادت وي. لِأَنَّ لِلْاِجْتِهَادِ فِيْهِ ځكه چې په دې كې د اجتهاد ګنجائش شته.

حل اللغة: ① مجرد-صرف-② اللعب-لوبه-③ مساغا-ګنجائش-④ مانع-منع كونكې

تشريح:- پاتې شو صرف تاش باندې بازي كول، نو هغه فسق نه دې. اوهركله چې فسق نه دې. نو مانع د شهادت به هم نه وي. او د ذكر شوي دري خبرو نه بغير صرف تاش سره بازي كول ځكه فسق نه دې. چه د عالمانو په دې كې اختلاف دې. د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله په نيز تاش باندې بازي كول حلال او جائز دي. نو هركله چې يو شئ د

دوي (دوه) جليل القدر عالمانو په نيز حلال او جائز وي. د هغې مرتکب ځنګه فاسق کيداې شي. او د کوم شي مرتکب چي فاسق نه وي. د هغه ګواهي قبلولي شي. نو صرف په تاش سره د بازي کونکي ګواهي به قبلولي شي.

وَشَرَطَ فِي الْأَصْلِ أَنْ يَكُونَ آكِلَ الرِّبَا مَشْهُورًا بِهِ او په مبسوط کي دا شرط دې. چه سود خوړونکې په سود خوړلو کي مشهور وي. لِأَنَّ الْإِنْسَانَ قَلَّمَا يَنْجُو عَنْ مُبَاشَرَةِ الْعُقُودِ الْفَاسِدَةِ وَكُلُّ ذَلِكَ رِبًا خکه چي انسان د عقود فاسده ارتکاب کاوه نه ډير کم خلاصې مومي. او هر يو ربوا ده.

حل اللغة: ① مشهورا - مشهور -② قلما - کم کرته -③ ينجو - نجات مومي -④ المباشرة - ګډون

تشريح:- امام محمد رحمه الله په مبسوط کي د سود خور د ګواهۍ رد کاوه کي دا شرط لګولي دې چي هغه په سود خوړي کي مشهور وي نو که په سود خوړۍ کي مشهور نه وي. نود هغه ګواهي به قبلولي شي. ځکه چي انسان په عامه توګه (عام طور) باندې د عقود فاسده مرتکب کيږي. او ډير کم خلګ داسي دي. چه د عقود فاسده نه بچ کيږي. او عقود فاسده هم د ربا او سود په معنی کي دی. نو که مطلقاً سود خوړۍ سره د اخته سړي ګواهي رد کړې شوه. نو په دنيا کي به ډير کم خلګ مقبول الشهادت پاتي شي. او په دې صورت کي مشکلات راپيښيدل يو ښکاره امر دې. حالانکه په شريعت د اسلام کي تکليف او حرج لرې کړې شوي دې. نود هغه سود خور ګواهي به مردود وي. کوم چي په سود خوړۍ کي مشهور وي.

قَالَ وَلَا مَنْ يَفْعَلُ الْأَفْعَالَ الْمُسْتَحْقَرَةَ كَالْبَوْلِ عَلَى الطَّرِيقِ وَالْأَكْلِ عَلَى الطَّرِيقِ اونه به د هغه ګواهي قبليږي. ځوک چي سپک اود بې وقوفۍ کارونه کوي. لکه په لاره کي بولې کول، او په لاره کي خوراک کول. لِأَنَّهُ تَارِكٌ لِلْمُرُوءَةِ وَإِذَا كَانَ لَا يَسْتَحْيِي عَنْ مِثْلِ ذَلِكَ لَا يَمْتَنِعُ عَنِ الْكَذِبِ فَيُتَّهَمُ خکه چي دا د ښه اخلاقو پريخودونکې دې. او هر کله چي هغه په داسي کار سره شرم نه کوي. نود دروغ وئيلو څخه به هم نه بچ کيږي. نو متهم به وي.

حل اللغة: ① المستحقرة - سپک -② البول - متيازې -③ الطريق - لاره -④ يستحي - حيا کوي ⑤ يمتنع - منع کيږي -⑥ تارک - پريخودونکې -⑦ المروءة - ښه کارونه -⑧ الکذب - دروغ

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه کوم کس خفيف او سپک حرکات کوي. د هغه ګواهي به نشي قبلولي لکه په لاره کي بولې کول، په لاره کي خوراک کول، او په بازار کي د خلګو په وړاندې خوراک خوړل. او د امام کرخي رحمه الله په قول صرف تهبند (لنګ) يا بې کالي (پرتوګ) اغوستلو سره په لاره کي تلل. ځکه چي داسي سړې ښه اخلاق او انسانيت پريږدي. او هر کله چي هغه په داسي کارونو سره شرم نه کوي. نو په دروغو وئيلو سره به هم شرم نه کوي. او کوم کس چي په دروغ وئيلو کي نه شرميږي. هغه به پخپله ګواهۍ کي متهم وي. او کوم سړې چي پخپله ګواهي متهم وي. د هغه ګواهي نه قبليږي. نود هغه ګواهي به هم نه قبليږي. په دې مسئله کي د څلور واړه امامانو اتفاق دې.

وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ مَنْ يُظْهِرُ سَبَّ السَّلَفِ لِظُهُورِ فِسْقِهِ او د هغه سړي ګواهي به هم نه قبليږي. ځوک چي اسلافو (بزرګانو) ته په ښکاره بدې ردې وائي. خکه چي د هغه فسق ښکاره دې بِخِلَافِ مَنْ يَكْتُمُهُ په خلاف د هغه کس ځوک چي دا پټوي.

حل اللغة: ① قضاء - قاضي کيدل د ده -② لاتقبل - نه قبليږي -③ النوادر - نادر روايات -④ يکتم - پټوي

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. که يو کس صحابه رضي الله عنهم، تابعين، او مجتهدين امامانو ته په ښکاره بدې ردې وائي. د هغه ګواهي به هم نه قبليږي. خکه چي دداسي سړي فاسق کيدل ښکاره دی. او د فاسق ګواهي مقبول نه ده. او که د هغوی په اړه کي د بدۍ اعتقاد ساتي. خو هغه نه ښکاره کوي. نودا سړې عادل او مقبول الشهادت دې.

**دخطابيه فرقې نه علاوه د اهل هوا د ګواهۍ حکم**

وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ أَهْلِ الْأَهْوَاءِ إِلَّا الْخَطَّابِيَّةَ د خطابيه فرقې نه علاوه د اهل هوا ګواهي قبلولي شي.

حل اللغة: الاهواء - خواهشات - اغلظ - زيات سخت - وجوه - طريقې - الفسق - فسق



تشريح:- د اهل هوا دوې (دوه) اويا فرقې اهل هوا هغه خلګ دی. کوم چي د نفساني خواهشاتو مطابق اعتقاد لري. يعني د نفس تابعداري او د سنتو مخالفت کوي. د اهل هوا بنيادي شپږ فرقې دی. ① جبريه ② قدريه ③ روافض خوارج ⑤ مشبه ⑥ معطله.... بيا په دوی کي د هر يو دولس دولس فرقې دی. نو په دې طريقه به د اهل هواء ټولې فرقې دوې (دوه) اويا[72] وي. او يوه فرقه به د اهل حق وي. يعني اهل سنت والجماعت. ددوی د ټولو عقائد او په دوی کي خپل منځ کي اختلاف دعلم کلام په کتابونو کي په پوره شرح او تفصيل سره ذکر دې.
پاتي شوه دا خبره چي دخطابيه فرقې ګواهي نه قبليږي د دې تفصيل به د دې بحث په آخر کي بيانوو.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا تُقْبَلُ امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه قبلولې به نشي. لِأَنَّهُ أَغْلَظُ وُجُوهِ الْفِسْقِ خکه چي دا د فسق په طريقو کي د ټولو نه زياته سخته ده.

تشريح:- امام شافعي رحمه الله فرمايي چي د اهل هواء ګواهي نه قبليږي. امام مالک رحمه الله هم ددې قائل دې. د امام شافعي رحمه الله دليل دادې. چه د اهل هواء اعتقادات فاسد کيدلو په وجه هغوی کي اعتقادی فسق دې. او اعتقادی فسق د عملي فسق نه بد تر دې. نو هر کله چي د اعمالو په اعتبار سره د فاسق ګواهي نه قبليږي. نو من حيث الاعتقاد به د فاسق ګواهي بدرجه اولی نه قبليږي.

وَلَنَا أَنَّهُ فِسْقٌ مِنْ حَيْثُ الِاعْتِقَادِ او زموږ دليل دادې. چه دا سړې د اعتقاد په اعتبار سره فاسق دې. وَمَا أَوْقَعَهُ فِيهِ إِلَّا تَدَيُّنُهُ بِهِ هغه لره په دې هوا کي کوم يو شي نه دې غورځولي. خود هغه تدين ( ديندارې) نو هغه به کذب نه ځان ساتي.

حل اللغة: ① اوقعه - واقع کړل - تدين - دينداری - يمتنع - منع کيږي - الکذب - دروغ

تشريح:- دليل دادې. چه د اهل هواء فاسق کيدل صرف د اعتقاد په اعتبار سره دی. خود هغوی دا اعتقاد ددې په حق ګڼلو دې. يعني دا سړې پخپل خيال کي هم دا حق خيال کوي. نود هغه د خيال مطابق د هغه خپله عقيده تدين او دينداری ده. ترک دين نه دې. او کوم سړې چي متدين او ديندار وي. هغه د دروغو وئيلو نه ځان ساتي. نو اهل هوا به هم د دروغ وئيلو نه ځان ساتي. او کوم سړې چي د دروغ وئيلو نه ځان ساتي. هغه په دروغ وئيلو سره نه متهم کيږي. په دې وجه د هغه ګواهي قبلولي شي. نود اهل هواء ګواهي به هم قبلولي شي.

وَصَارَ كَمَنْ يَشْرَبُ الْمُثَلَّثَ او دا د هغه سړي پشان شو. کوم چي په مباح ګڼلو سره مثلث شراب څکي. أَوْ يَأْكُلُ مَتْرُوكَ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا مُسْتَبِيحًا لِذَلِكَ يا هغه ذبيحه خوري. چه په هغې باندې په قصد سره د الله تعالی نوم پريخودلې شوي وي.

حل اللغة: ① يشرب - څکی -② المثلث - د شرابو يو قسم -③ متروک - پريښودې شوې -④ التسمية - بسم الله ⑤ عامد - په قصد کونکې -⑥ مستبيح - مباح ګڼونکې -⑦ التعاطي - کول -⑧ الغلاط - غلو کونکی

تشريح:- لکه مثلاً يو سړي مثلث شراب په مباح ګڼلو سره اوڅکل. يا يو شافعي متروک التسميه عامداً مباح اوګڼله. او وې خوړله. نو هغه به مردود الشهادت نه وي. شراب مثلث د انګورو هغه شيره ده. کومه چي دومره پخه کړې شي. چه دوې (دوه) برخې (حصې) اوسوزي. او يوه برخه پاته شي. خو نشه آور شوي نه وي. نودا د امام محمد رحمه الله په نيز حرام دی. او د شيخينو رحمهما الله په نيز ددې څښل حلال دی. او که يو مسلمان يو حيوان (څاروې) ذبح کړو. خو په قصد سره ئې بسم الله پريخودله. نود امام شافعي رحمه الله په نيز ددې خوراک حلال دې. نود حنفي شراب مثلث حلال ګڼل او څکل، او د شافعي متروک التسميه عامداً حلال ګڼل او خوړل، چونکه د تدين او ديندارۍ خلاف نه دی. خکه به ددوی ګواهي قبلولي شي. دغه ډول د اهل هوا اعتقاد دهغوی په ګمان کي صحيح او درست دی. په دې وجه د هغوی په خيال کي د هغوی عقيده به هم د تدين او ديندارۍ خلاف نه وي. او هر کله چي د هغوی اعتقاد د تدين او ديندارۍ خلاف نه دې. نود هغوی ګواهي به هم قبلولي شي.

بِخِلَافِ الْفِسْقِ مِنْ حَيْثُ التَّعَاطِي په خلاف د داسي فسق چي په اعمالو کي وي.

تشريح:- د هغې په خلاف عملي فسق دې. چه د هغوی ګواهي به نشي قبلولي. ځکه چي عملي فسق يو ناجائز او حرام فعل په مباح خيال کاوه سره نه کوي. بلکه دا حرام ګڼي. او کوي يې. نو هر کله چي هغه د حرام فعل ارتکاب

كولې شي.نود دروغو ارتكاب هم كولې شي.او كوم سړي چې په دروغ ونيلو سره متهم وي،چونكه د هغه گواهي نه قبليږي.خكه به د عملي فاسق گواهي نه قبليږي.

| أَمَّا الْخَطَّابِيَّةُ فَهُمْ مِنْ غُلَاةِ الرَّوَافِضِ باتې شوه خطابيه فرقه،نو هغه د غالى (غلوكونكو) رافضيانو يوه فرقه ده يَعْتَقِدُونَ الشَّهَادَةَ لِكُلِّ مَنْ حَلَفَ عِنْدَهُمْ دوى د هر هغه سړي په شهادت (گواهۍ) باندې اعتقاد لري.څوك چې ددوى په وړاندې قسم اوخوري. وَقِيلَ يَرَوْنَ الشَّهَادَةَ لِشِيعَتِهِمْ وَاجِبَةً او بعض وائي،چه دوى د خپلې ډلې لپاره گواهي واجب گنړي. فَتَمَكَّنَتِ التُّهْمَةُ فِي شَهَادَتِهِمْ نود هغوى په شهادت كې تهمت متمكن شو.خكه چې د هغوى فسق ښكاره دې. |
|---|

حل اللغة: ① الروافض -شيعگان-② يعتقدون-اعتقاد لري-③ تمكنت-پيدا شو-④ ظهور-ښكاره كيدل

تشريح:- باتې شوه خطابيه فرقه، نو د دوى په اړه كې ① رومبې قول دادې،چه خطابيه د روافضو يوه غلو كونكې فرقه دي.كومه چې ابو الخطاب محمدبن ابى وهب اجدع اړخ ته منسوب ده.ابوالخطاب په كوفه كې اوسيدلو.د هغه عقيده وه.چه حضرت علي ﷺ اله اكبر (لوئې خدائې) دې.او جعفر بن محمد صادق اله اصغر (وړوكې خدائې) دې.كله چې دې د جعفر صادق په خدمت كې پيش كړې شو.نو جعفر هغه ته ديكه وركړله.اود دربار نه ئې بهر اوښكلو.نو هغه د خپل اله (خدائې) كيدلو دعوه اوكړله.اود هغه مريدانو اووئيل.چه جعفر خدائې دې.او ابوالخطاب لوئې خدائې دې.عيسى بن موسى بن علي بن عبدالله بن عباس د هغه سره مقابله او جنگ اوكړو.او هغه ئې قتل كړو.بيا عيسى هغه په سولئ كړو.او ټولې دنيا لپاره ئې د عبرت سامان پيدا اكړو.② دوهم قول دادې.چه د فرقه خطابيه عقيده دا ده.كه په فرقه خطابيه كې يوكس په چا باندې دخه شئ دعوه اوكړي.نو ددې ډلې په پاته خلگو باندې د هغه په حق كې گواهي وركول واجب دي.كه د هغه دعوه رشتيا وي.اوكه دروغ وي.③ او دريم قول دادې.چه د خطابيه عقيده داده.چه څوك ددوى په وړاندې قسم اوخوري.د هغه په حق كې گواهي وركول صحيح گنړي

④ د هغوى گواهي د احنافو په نيز هم نه قبليږي.خكه چې د قول اول په بناء باندې د خطابيه خلگ كافر دي.اود كافرانو گواهي د مسلمانانو خلاف نه قبليږي.نود هغوى گواهي به نه قبليږي.اود دوهم او دريم قول په بناء باندې د هغوى په شهادت كې د دروغ ونيلو شبه ده.په دې طريقه چې هغوى د خپلې ډلې په حق كې گواهي وركول واجب گنړي.كه د هغوى د ډلې د خلگو دعوه رشتيا وي.او كه دروغ وي.يا څوك چې د هغوى په وړاندې قسم اوخوري.د هغه لپاره گواهي وركول جائز گنړي.كه هغوى پخپل قسم كې دروغجن وي.او كه رشتونى وي.بهرحال دا خلگ پخپل شهادت كې متهم بالكذب دي.اود متهم بالكذب گواهي نشي قبلولې.نود هغوى گواهي به هم نه قبليږي.

**د ذمي په حق كښې د حربي د گواهئ حكم**

| قَالَ وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ أَهْلِ الذِّمَّةِ بَعْضِهِمْ عَلَى بَعْضٍ اود ذميانو گواهي به خپل منځ كې د يو بل په خلاف قبلولې شي. وَإِنِ اخْتَلَفَتْ مِلَلُهُمْ اگرچه د هغوى دينونه جلا جلا وي. |
|---|

حل اللغة: ① ملل-جمع د مله ،دين-② التوقف-ودريدل-③ اهل الذمة- كافرچه اسلامى ملك كې اوسى اودهغيگ قوانين منى

تشريح:- ابو الحسين قدورى ﷺ فرمائي.چه په ذميانوكې د بعض شهادت د بعض خلاف قبلولې شي. يعني كه يو ذمي د بل ذمي په خلاف گواهي وركړي.نود هغه گواهي به مقبول وي.اگرچه د هغوى اديان مختلف وي.مثلاً د يهودى د نصرانى خلاف، اود نصرانى د يهودى خلاف گواهي وركول جائز ده.

| وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ: لَا تُقْبَلُ لِأَنَّهُ فَاسِقٌ او امام مالك او امام شافعي ﷺ فرمائي.چه د ذميانو خپل منځ كې گواهي به نه قبليږي. قَالَ اللَّهُ تَعَالَى {وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ} خكه چې هغوى فاسق دي.الله تعالى فرمائيلي دي.چه ،،هم كافر فاسق دي،، فَيَجِبُ التَّوَقُّفُ فِي خَبَرِهِ نود هغه په خبر كې توقف كول واجب دي. |
|---|



تشريح:- امام مالك او امام شافعي ﷺ فرمائي.چه د ذميانو گواهي خپل منځ كې د يو بل په خلاف مطلقاً نه قبليږي.كه د هغوى دينونه متفق وي.اوكه مختلف وي.

① د امام مالك او امام شافعي ﷺ دليل دادې.چه كافر فاسق دې.لكه الله تعالى فرمائيلي دي. ﴿وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾ ،،هم كافر ظالمان دي،، او ظالم فاسق وي.نو كافر فاسق شو.اود فاسق خبر فوراً نه قبليږي.بلكه په دې كې توقف كول واجب دې.لكه د الله تعالى ارشاد دې. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا﴾ كه يو فاسق تاسو له خبر راوړي.نود هغې تحقيق اوكړئ.يعني فوراً ئې مه قبلوئ.بلكه توقف اوكړئ.لنډيز داچه د فاسق خبر او شهادت نه قبليږي.او كافر هم چونكه فاسق دې.نود هغه شهادت به هم نه قبليږي.

| وَلِهَذَا لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَى الْمُسْلِمِ فَصَارَ كَالْمُرْتَدِّ په دې وجه به د هغه شهادت د مسلمان خلاف نه قبليږي.نو هغه د مرتد پشان شو. |
|---|

حل اللغة: ① صار-اوگرخيدل-② اجاز-اجازت وركړې وو-③ اولاد-بچي -④ الصغار-واړه

تشريح:- هم ددې فاسق كيدلو په وجه د كافر شهادت د مسلمان خلاف نه قبليږي.نو كافر د مرتد پشان شو.يعني لكه څنگه چې د مرتد گواهي د مرتد او غير مرتد په حق كې اود دوى په خلاف نه قبليږي.دغه ډول د كافر گواهي به نه د كافر اوغير كافر دواړو په حق كې قبليږي.اونه به د دواړو خلاف قبليږي.

| وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَجَازَ شَهَادَةَ النَّصَارَى بَعْضِهِمْ عَلَى بَعْضٍ (۱) او زموږ دليل دادې.چه رسول الله ﷺ د نصرانيانو گواهي د يو بل په خلاف جائز گرځولې ده. |
|---|

تشريح:- دليل دا حديث دې. ﴿أن النبي ﷺ أجاز شهادة النصارى بعضهم على بعض﴾ يعني رسول الله ﷺ د نصارى د بعضو شهادت د بعضو خلاف جائز گرځولې دې.د احنافو د اړخه په بيان شوى دې دليل باندې دا اعتراض شوې دې.چه دليل د دعوه مطابق نه دې.خكه دعوه داده.چه په ذميانوكې د بعض شهادت د بعضو په خلاف جائز دې.اگرچه د هغوى ملتونه مختلف وي.او په دليل كې چې كوم حديث ذكر كړې شوې دې.په هغې كې د شاهد او مشهودعليه دواړو ملت يو دې.يعني نصرانيت،كه علامه مرغيناني ﷺ د نصارى په ځائې د ،،اهل كتاب،، لفظ ذكركړې وې.او داسې ئې فرمائيلي وو. ﴿أن النبي ﷺ اجاز شهادة أهل الكتاب﴾ نو دليل د دعوه موافق كيږي.په ابن ماجه كې د جابربن عبدالله په طريق سره دا حديث په ذكر شوى الفاظو سره موجود هم دې.د جابر بن عبدالله نه روايت دې. ﴿ان النبي ﷺ اجاز شهادة أهل الكتاب بعضهم على بعض﴾

| وَلِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ عَلَى نَفْسِهِ وَأَوْلَادِهِ الصِّغَارِ او خكه چې ذمي پخپل ذات او پخپل اولاد صغار باندې ولايت لري فَيَكُونُ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ عَلَى جِنْسِهِ نو هغه ته به پخپل جنس باندې د شهادت ولايت هم وي. |
|---|

تشريح:- د احنافو ﷺ دوهم دليل دادې.چه كافر ته پخپل ذات باندې هم ولايت حاصل دې.او پخپل نابالغ اولاد باندې هم،او كوم سړي ته چې ولايت حاصل وي.هغه د شهادت هم اهل وي.نو كافر به د شهادت اهل وي.البته د كافر گواهي به د هغه دجنس (كافر) خلاف قبلولې شي.خود هغه د جنس نه علاوه (د مسلمانانو) خلاف به نشي قبلولې.خكه الله تعالى فرمائيلي دي. ﴿وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا﴾ يعني، ،هيڅ چرې به نه وركوي.الله تعالى كافرانو ته په مسلمانانو باندې لار د غلبې، ،اود مسلمانانو خلاف گواهي وركاوه كې چونكه د كافرانو غلبه ده.خكه به د مسلمانانو خلاف د كافرانو گواهي نه قبليږي.

(۱) غربه الزيلعي بهذا اللفظ ثم خرجه من حديث جابربن عبدالله ﷺ أن النبي ﷺ أجاز شهادة أهل الكتاب بعضهم على بعض أخرجه ابن ماجه في الأحكام باب ٣٣ رقم ٢٣٧٤) لكن يشكل بهذا الحديث على صاحب الهداية لأن فيه ذكر أهل الكتاب دون النصارى والله أعلم)ـ

وَالْفِسْقُ مِنْ حَيْثُ الْاِعْتِقَادِ غَيْرُ مَانِعٍ او فسق من حيث الاعتقاد مانع شهادت نه دي. لِاَنَّهٗ يَجْتَنِبُ مَا يَعْتَقِدُهٗ مُحَرَّمَ دِيْنِهٖ، وَالْكِذْبُ مَحْظُوْرُ الْاَدْيَانِ خكه چې كوم شئ هغه پخپل دين كي حرام گنړي، د هغې څخه به پرهيز كوى. او دروغ ويل په ټولو دينونو كي حرام دى.

**حل اللغة:** ① **مانع** -منع كونكي- ② **يجتنب**-خان ساتى- ③ **حظور**-ناروا- ④ **الاديان**-جمع د دين، ملت

**تشريح:**- او پاتې شو د امام شافعي او امام مالك رحمهما الله دا وينا، چه كافر فاسق دي. نو ددې ځواب دادې چه د كافر فسق اعتقادى دې. او وړاندې تير شوى دى. چه اعتقادى فسق مانع د شهادت نه وى. نود كافر اعتقادى فسق به مانع د شهادت نه وى. او ددې وجه داده. چه انسان كوم شئ خپل دين كي حرام گنړى، د هغې نه پرهيز كوى. او دروغ په ټولو دينونو كي ممنوع او حرام دى. نو كافر به هم د دروغو ممنوع كيدلو په وجه ددې نه پرهيز كوى. او كله د دروغو نه پرهيز كوى. او خان ساتى. نو هغه به په دروغو سره هم نه متهم كيږى. او هر كله چې كافر په دروغو سره متهم نه دې. نود هغه گواهى به هم قبلولې شي.

بِخِلَافِ الْمُرْتَدِّ لِاَنَّهٗ لَا وِلَايَةَ لَهٗ په خلاف د مرتد، خكه چې د هغه لپاره هيڅ ولايت نشته.

**تشريح:**- دا عبارت د امام شافعي رحمه الله د قياس ځواب دې. حاصل د ځواب دادې. چه مرتد ته نه پخپل ذات باندې ولايت وى. او نه پخپل صغار اولاد باندې (ولايت وى). نو هر كله چې مرتد ته نه پخپل ذات باندې ولايت حاصل دې. او نه پخپل اولاد باندې (ولايت حاصل دې). نو په بل چا به څنگه ولايت حاصل وى. او هر كله چې مرتد ته بالكل ولايت حاصل نه دې. نو هغه ته به د شهادت حق هم حاصل نه وى. خكه چې د شهادت حق هغه كس ته داخل وى. چاته چې د ولايت حق حاصل وى.

وَبِخِلَافِ شَهَادَةِ الذِّمِّيِّ عَلَى الْمُسْلِمِ لِاَنَّهٗ لَا وِلَايَةَ لَهٗ بِالْاِضَافَةِ اِلَيْهِ او په خلاف د ذمي په مسلمان باندې د گواهۍ وركولو. خكه چې ذمي ته مسلمان اړخ ته نسبت كاوه سره هيڅ ولايت نشته.

**تشريح:**- دا عبارت د امام شافعي رحمه الله د دوهم قياس ځواب دې. حاصل د ځواب دادې. چه د مسلمان خلاف د ذمي د شهادت نه قبليدلو يوه وجه داده. چه ذمي ته په مسلمان باندې هيڅ ولايت نشته. لكه د الله تعالى ارشاد ﴿وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا﴾ په دې شاهد دې.

وَلِاَنَّهٗ يَتَقَوَّلُ عَلَيْهِ خكه چې ذمي به په مسلمان باندې بهتان تړي. لِاَنَّهٗ يَغِيْظُهٗ قَهْرُهٗ اِيَّاهُ خكه چې د مسلمان هغه مقهور او مغلوب كول، هغه په غيظ (او غصه) كي اخته كوى. وَمِلَلُ الْكُفْرِ وَاِنِ اخْتَلَفَتْ فَلَا قَهْرَ او د كفر ملتونه اگرچه مختلف دى. خو هيڅ چا بل لره مقهور كړي نه دي فَلَا يَحْمِلُهُمُ الْغَيْظُ عَلَى التَّقَوُّلِ نو هغوى به غصه په بهتان تړلو باندې نه راضي كوى.

**حل اللغة:** ① **يتقول** -بهتان لگوى- ② **يغيظ**-غصه كوى- ③ **قهر**-غصه- ④ **يحمل**-راضي كيږى

**تشريح:**- دويمه وجه داده. چه ذمي به په مسلمان باندې بهتان تړي. خكه چې د مسلمان هغه لره مقهور او د حكم لاندې ساتل هغه په غيظ او غضب (يعني غصه) كي اخته كوى. نو ذمي د خپلې غصې لرې كاوه لپاره په مسلمان باندې بهتان تړلې شي. او ددې احتمال په صورت كي د شهادت قبليدلو د سره سوال نه پيدا كيږى. او د كفر ملتونه اگرچه مختلف دى. خو په دارالاسلام كي د يو مذهب كافر د دوهم مذهب كافر چونكه مقهور او مغلوب كولې نشي. خكه به د هغوى خپل منځ كي څه غصه هم نه وى. او هر كله چې پخپل منځ كي څه غصه نشته. نو په يو بل باندې به بهتان هم نه تړي. او هر كله چې خپل منځ كي د بهتان تړلو احتمال ختم شو. نو د هغوى پخپل منځ كي د يو بل خلاف گواهى به هم قبلولې شي.

### د ذمي په حق كښې د حربي د گواهۍ حكم

قَالَ وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْحَرْبِيِّ عَلَى الذِّمِّيِّ فرمايي او د ذمي په خلاف به د حربي گواهى نه قبليږى. اَرَادَ بِهٖ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ الْمُسْتَاْمَنَ



والله اعلم ددې نه مراد هغه حربي دې. كوم چې امان اخستې وى. او دارالاسلام ته راغلې وى.

**تشريح:**- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي. چه د حربي شهادت به د ذمي په خلاف نه قبليږى. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د حربي نه مراد هغه حربي دې چاچه امان اخستې وى. او دارالاسلام ته راغلې وى. يعني د حربي مستامن گواهى د ذمي په خلاف نشي قبلولې.

د حربي نه حربي مستامن خكه مراد اخستې دې چه د حربي غير مستامن گواهى ناممكن ده. خكه چې د شهادت لپاره د قاضي مجلس ضرورى دې. او قضاء لپاره دارالسلام كي د مصر او ښار كيدل شرط دى. نو حربي غير مستامن كوم چې په دارالحرب كي مقيم دې. هغه دا شرط څنگه پوره كولې شي. او كه حربي په دارالسلام كي د امان نه بغير داخل شي. او په مجلس د قضاء كي حاضر شو. نو هغه به چونكه قهراً او غلبةً نيولې كيږى. خكه به هغه غلام وى. او د غلام گواهى نه دچا په حق كي قبلولې شي. او نه دچا خلاف قبلولې شي.

لِاَنَّهٗ لَا وِلَايَةَ لَهٗ عَلَيْهِ دليل دا دې چې حربي ته په ذمي باندې هيڅ ولايت نشته. لِاَنَّ الذِّمِّيَّ مِنْ اَهْلِ دَارِنَا خكه چې ذمي زموږ د دار (ملك) اوسيدونكې دې. وَهُوَ اَعْلٰى حَالًا مِّنْهُ او هغه د حربي نه په ښه حالت كي دې.

**حل اللغة:** ① **دار** -ملك- ② **اعلى** -پورته، اوچت- ③ **حال**-حالت- ④ **ولاية**-تصرف

**تشريح:**- دليل دادې. چه حربي مستامن ته په ذمي باندې هيڅ ولايت نشته. خكه چې حربي مستامن د دارالحرب اوسيدونكې دې. او ذمي د دارالاسلام اوسيدونكې دې. او حكماً د دارين اختلاف ولايت منقطع كوى. يعني د دارالحرب او دارالاسلام كي ديو دار اوسيدونكى ته د دوهم دار اوسيدونكي باندې د ولايت حق نه حاصليږى. نو هر كله چې حربي مستامن ته په ذمي باندې د ولايت حق نه حاصليږى. نود حربي مستامن گواهى به د ذمي خلاف نه قبليږى. خكه د شهادت اهل هغه كس وى. كوم چې د اهل ولايت څښتن وى. ② دويمه وجه داده. چه د ذمي حالت د حربي مستامن نه څو چنده غوره دې. يعني ذمي اهل اسلام ته زيات نږدې دې. او ذمي اهل اسلام ته زيات نږدې خكه دې. چه ذمي د اسلام خليفه يعني جزيه قبول كړې ده. او په دې وجه هم چې د مسلمان پشان د ذمي وينه محفوظ شوې ده. هم دا وجه ده. كه يو مسلمان يو ذمي په ناحقه قصداً قتل كړو. نو مسلمان به په قصاص كي قتلولې شي. او كه مسلمان څوك حربي مستامن قتل كړى. نود هغه په قصاص كي به مسلمان نشي قتلولې. بهرحال د ذمي حالت د حربي مستامن نه ډير غوره دې. او اسلام ته په نږدې والي كي د اعلى حال والا په خلاف د ادنى حال والا گواهى نه قبليږى. نود ذمي خلاف به د حربي مستامن گواهى نه قبليږى.

### د حربي په حق كښې د ذمي د گواهۍ حكم

وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ الذِّمِّيِّ عَلَيْهِ او د ذمي شهادت به د حربي خلاف قبلولې شي. كَشَهَادَةِ الْمُسْلِمِ عَلَيْهِ وَعَلَى الذِّمِّيِّ لكه (څنگه) چې د مسلمان شهادت د حربي او ذمي خلاف قبلولې شي.

**تشريح:**- ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي. چه د ذمي شهادت د حربي خلاف قبلولې شي. خكه چې اسلام ته د نږدې والي په وجه د ذمي حال اعلى دې. او د حربي حال ادنى دې. او دا خبره مسلم ده. چه د اعلى حال والا گواهى دادنى حال والا خلاف قبلولې شي. نود ذمي گواهى د حربي خلاف قبلولې شي. لكه د مسلمان شهادت د حربي مستامن او ذمي په خلاف هم ددې نكته په وجه قبلولې شي

وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ الْمُسْتَاْمَنِيْنَ بَعْضِهِمْ عَلٰى بَعْضٍ اِذَا كَانُوْا مِنْ اَهْلِ دَارٍ وَّاحِدَةٍ او كوم حربي چې امان واخلي او راشي. په هغوى كي د بعض گواهى د بعض په خلاف قبلولې شي. په دې شرط چې دواړه د يو ملك وى.

**تشريح:**- او كه يو څو حربيان امان واخلي. او دارالاسلام كي اوسيږى. نو په دوى كي خپلو كي د يو بل خلاف گواهى قبلولې شي. په دې شرط چې شاهد او مشهود عليه د يو ملك اوسيدونكې وى. يعني دواړه د يو بادشاه رعيت كي وى.

فَاِنْ كَانُوْا مِنْ دَارَيْنِ كَالرُّوْمِ وَالتُّرْكِ لَا تُقْبَلُ او كه دواړه د مختلف ملكونو وى. لكه روم او تُرك، نو نه به قبليږى.

لِأَنَّ اخْتِلَافَ الدَّارَيْنِ يَقْطَعُ الْوِلَايَةَ وَلِهَذَا يَمْنَعُ التَّوَارُثَ ځکه چې اختلاف دارين ولايت منقطع کوي.په دې وجه خپل منځ کې ميراث ممنوع دې

حل اللغة: ① دارين -تثنيه د دار، کور-② يقطع-کټ کوي-③ يمنع -منع کوي-④ التوارث-د يوبل نه ميراث اوړل

تشريح:- اوکه د دواړه مستامن حربيانو ملکونه جلا وي.مثلاًيو د روم اوسيدونکې وي.او دوهم د ترك اوسيدونکې وي.نود دوی گواهي به د يو بل خلاف نه قبليږي.ځکه چې د ملکونو اختلاف ولايت ختموي.هم دا وجه ده.چه د اختلاف دارين په وجه خپل منځ کې ميراث ممنوع دې.يعنی که وارث د يو ملك اوسيدونکې وي.او مورث دبل ملك اوسيدونکې وي.نو په دوی کې به ميراث نه جاري کيږي.

بِخِلَافِ الذِّمِّيِّ لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ دَارِنَا په خلاف د ذمي،چه هغه دارالاسلام کې دې. وَلَا كَذَلِكَ الْمُسْتَأْمَنُ او مستامن داسې نه دې.

تشريح:- دا عبارت د يو سوال خواب دې.سوال دادې.چه هرکله اختلاف دارين ولايت ختموي. نو د ذمي گواهي د مستامن حربي خلاف قبليدل پکار نه وو.ځکه چې ذمي په دارالاسلام کې اوسيږي.او حربي په دارالحرب کې اوسيږي.اوهم دا اختلاف دارين دې؟

خواب*ددې خواب دادې.چه ذمي چونکه په دارالاسلام کې اوسيږي.ځکه به د دارالاسلام د شرافت په وجه د ذمي لپاره عام ولايت ثابت وي.لکه څنګه چې د مسلمان لپاره عام ولايت ثابت دې.او هم ددې ولايت عامه په وجه د مسلمان گواهي د حربي او ذمي دواړو خلاف قبلولې شي.نوهم دغه ډول د ذمي لپاره د ولايت عامه ثابتيدلو په وجه د ذمي گواهي د حربي خلاف قبلولې شي.

سوال* خو اوس به دا سوال کيږي.چه هرکله ذمي ته د دارالاسلام د شرافت په وجه ولايت عامه حاصل دې.نود ذمي گواهي د مسلمان خلاف هم قبلول پکار دی.حالانکه د ذمي گواهي د مسلمان نشي قبلولې.

خواب*ددې خواب دادې.چه د قياس تقاضا هم دا وه.چه د ذمي گواهي د مسلمان خلاف هم قبول کړې شي.خودا قياس د نص؟﴿وَلَن يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا﴾ په وجه ترك کړې شو.اود حربي مستامن په اړه کې چونکه داسې ډول هيڅ نص موجود نه دې.په دې وجه د حربي مستامن خلاف د ذمي گواهي قبلولې شي.او مستامن چونکه د دارالاسلام اوسيدونکې نه دې.ځکه به هغه ته ولايت عامه حاصل نه وي.دا خيال ساتل پکار دی.چه اهل ذمه که د مختلف ملکونو وي.نود هغوی گواهي د يو بل خلاف قبلولې شي.ددې وجه داده.چه اهل ذمه د ذمي کيدلو نه وړاندې د مختلف ملکونو وو.خوکله چې دوی ذمي جوړ شو.په دارالاسلام کې ئې اوسيدل اختيار کړل.نو واړه به د دارالاسلام اوسيدونکی شمارلې شي.اود ټولو ملك به دارالاسلام شمارلې کيږي.او هرکله چې د ټولو ملك دارالاسلام شو.نو اختلاف دارين چرته پاتې شو.

په شهادت کښې د عدالت معيار

وَإِنْ كَانَتِ الْحَسَنَاتُ أَغْلَبَ مِنَ السَّيِّئَاتِ وَالرَّجُلُ مِمَّنْ يَجْتَنِبُ الْكَبَائِرَ اوکه ( د يوکس ) نيکۍ د هغه په گناهونو غالب وي.اود کبيره گناهونو نه پرهيز کوي. قُبِلَتْ شَهَادَتُهُ نود هغه شهادت به قبلولې شي. وَإِنْ أَلَمَّ بِمَعْصِيَةٍ هَذَا هُوَ الصَّحِيحُ فِي حَدِّ الْعَدَالَةِ الْمُعْتَبَرَةِ اګرچه دځه صغيره گناه ارتکاب ئې کړې وي.د عدالت معتبره په تعريف کې هم دا صحيح ده. إِذْ لَا بُدَّ مِنْ تَوَقِّي الْكَبَائِرِ كُلِّهَا ځکه چې د ټولو کبيره گناهونو نه بچ کيدل ضروري دي. وَبَعْدَ ذَلِكَ يُعْتَبَرُ الْغَالِبُ كَمَا ذَكَرْنَا او ددې نه روسته به د غالب اعتبار کولې شي.لکه څنګه چې موږ ذکر کړل.

حل اللغة: ① الحسنات -جمع د حسنة نيکی-② السيات-جمع د سيئة ،بدی-③ يجتنب-پرهيز کوی-④ الم-درد ⑤ المعصية-گناه-⑥ التوقی-خان ساتل-⑦ يعتبر-معتبردې-⑧ لابد-ضروري دی

تشريح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.چه په شهادت کې کوم عدالت شرعاً معتبر دې.د هغې تعريف دادې.چه



گواه داسې سړې وي.چه فرائض نه ترك کوي.اود کبائر او اصرار علی الصغيره نه پرهيز کوي.اود هغه نيکيانې د هغه په وړو وړو گناهونو باندې غالب وي.حاصل داچه د کبائر او اصرار علی الصغيره نه بچکيدل خو ډير زيات ضروري دی.ددې نه روسته به د غالب اعتبار کيږي.يعنی که نيکيانې د هغه د گناهونو نه زياتې وي.نود هغه گواهي به قبلولې شي.اګرچه هغه د ځه صغيره گناه ارتکاب کړې وي.

فَأَمَّا الْإِلْمَامُ بِمَعْصِيَةٍ لَا تَنْقَدِحُ بِهِ الْعَدَالَةُ الْمَشْرُوطَةُ نو چونکه د صغيره گناه په مرتکب کيدلو سره مشروط عدالت کې نقص نه راځی. فَلَا تُرَدُّ بِهِ الشَّهَادَةُ الْمَشْرُوعَةُ ځکه به په دې وجه شهادت مشروط نشي ردکولې. لِأَنَّ فِي اعْتِبَارِ اجْتِنَابِهِ الْكُلَّ سَدَّ بَابِهِ ځکه چې د ټولو صغيره گناهونو نه د بچ کيدلو اعتبار کاوه کې د شهادت دروازه بنديږي. وَهُوَ مَفْتُوحٌ إِحْيَاءً لِلْحُقُوقِ حالانکه د حقوقو ژوندی کاوه لپاره دا دروازه کلاؤ ده.

حل اللغة: ① الالمام -مشروط کول-② معصية-گناه-③ تنقدح-نقص راځی-④ سد-بند ⑤ مفتوح-کولاؤ-⑥ باب-دروازه-⑦ ترد-رد کولې شی-⑧ اجتناب-پرهيز کول

تشريح:- دليل دا دې چې د صغيره گناه په ارتکاب سره د هغه په عدالت کې هيڅ نقصان نه واقع کيږي.کوم عدالت چې په شهادت کښې شرط دې.او هرکله چې د صغيره گناه په ارتکاب سره په عدالت کې نقصان نه واقع کيږي.نود هغې په وجه به مشروط شهادت نه ساقطيږي.اود صغيره گناه په ارتکاب سره نقصان ځکه نه واقع کيږي.که د عدالت لپاره د ټولو صغيره گناهونو نه بچ کيدل ضروري اوګرځولې شي.نود شهادت دروازه به بنده شي.حالانکه د خلګو د حقوقو ژوندی کاوه لپاره د شهادت دروازه کلاؤ ده.ځکه چې د انبياؤ نه روسته داسې سړی نشته.چه د هغه نه ځه ناځه د صغيره گناه ارتکاب نه کيږي.نوهرکله چې دا خبره ده.اود شهادت دروازه هم کلاؤ ده.نود شهادت لپاره به د ټولو صغيره گناهونو نه بچ کيدل ضروري وي.

د غير مختون ( ناسنته) د گواهۍ حکم

قَالَ وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَقْلَفِ لِأَنَّهُ لَا يُخِلُّ بِالْعَدَالَةِ اود غيرمختون شهادت قبلولې شي.

حل اللغة: ① الاقلف -ناسنته-② يخل-خلل اچوی-③ استخفاف-سپك ګڼړل-④ صنيع-عمل،حرکت

تشريح:- حل اللغة* اقلف غيرمختون،بغير ختنه والا( ناسنته).

ابو الحسين قدوري رحمه الله ليکلی دی.چه د غيرمختون گواهي به قبلولې شي. ځکه چې ختنه زموږ په نيز سنت ده.او ترك سنت په عدالت کې مخل نه وي.نود ختنې نه کيدل به دده په عدالت کې مخل نه وي.او هرکله چې غيرمختون کيدل دده په عدالت کې مخل نه دی.نو دده گواهي به هم قبول وي.

إِلَّا إِذَا تَرَكَهُ اسْتِخْفَافًا بِالدِّينِ دليل دا دې چې دا د هغه په عدالت کې مخل نه دې.خوکله چې هغه دا په دين کې سپك ګڼړلې وي.او پريښودې ئې وي ( نو دده گواهي به نشی قبلولې). لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ بِهَذَا الصَّنِيعِ عَدْلًا ځکه چې هغه به په دې حرکت سره عادل نه پاتې کيږي.

تشريح:- البته که د سنت نه ئې اعراض اوکړو.دين ئې حقر( اوسپك) اوګڼړلو.او ختنه ئې پريخودله.نو يقيناً د هغه گواهي به نه قبليږي. ځکه چې هغه په دې حرکت سره عادل لا ځه کوې مسلمان هم پاتې نشو.او هرکله چې عادل پاتې نشو.بلکه مسلمان هم پاتې نشو.نود هغه گواهي څنګه قبليدلې شي.خوکه د ځه عذر په وجه ئې ختنه ترك کړې وي.نود هغه گواهي به قبول وي.

د خصي د گواهۍ حکم

وَالْخَصِيُّ اود خصي گواهي قبول ده. لِأَنَّ عُمَرَ رضي الله عنه قَبِلَ شَهَادَةَ عَلْقَمَةَ الْخَصِيِّ (1) ځکه چې حضرت عمر رضي الله عنه د علقمه خصي گواهي قبوله کړې ده.

(1) اخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه في الأقضية (نصب:١٧٧/٤)_

تشریح:- خصي هغه سړي دي.چه د هغه خصيتين ( هګۍ) اوښکلي شوي وي.ابو الحسين قدوري ﷫ چې د خصي
ګواهي قبلولي شي.او دليل دادي.چه حضرت عمر﷠ د قدامه بن مظعون﷠ خلاف د شرابو څښلو په سلسله کي د
علقمه خصي ګواهي قبول کړي ده.قدامه بن مظعون صحابي دي.په غزوهٔ بدر او په نورو ټولو غزواتو کي ئي
شرکت کړي دي.د عبدالله بن عمر اود حفصه بنت عمر﷠ ماما دي.حضرت عمر﷠ هغه لره د بحرين عامل مقرر
کړي وو.خو بيا ئي معزول کړي وو.مختصر واقعه داده.چه د عبدالقيس بن البحرين سردار جارود د قدامه بن
مظعون خلاف ګواهي ورکړله.چه دې شراب څکي.حضرت عمر﷠ اوفرمائيل.چه آيا ستا سره بل څوك دوهم ګواه
شته.علقمه خصي اووئيل.زه ګواهي ورکوم.چه ما دې په شرابو څښلو باندې کتلي دې.ددې نه روسته حضرت
عمر﷠ خپل اوښی (دخور خاوند) قدامه ته کوړې اولګولې.او هغه ئي معزول کړو.

وَلِأَنَّهُ قُطِعَ عُضْوٌ مِنْهُ ظُلْمًا اوځکه چې د خصي يو اندام په ظلم سره کټ کړي شوي دي فَصَارَ كَمَا إِذَا قُطِعَتْ يَدُهُ نو داسې
شوه.لکه چې لاس کټ کړي شوي دي.

حل اللغة: ① قطع -کټ کول-② يد-لاس-③ يوجب-واجبوی-④ الابوين-مورپلار

تشریح:- دوهم دليل دادې.چه د خصي اندام ( خصيتين) په ظلم سره کټ شوي دي.نو داسې شوه.لکه چې د يوکس
لاس کټ شوې وي.اودا خبره مسلم ده.که د يو کس واړه اندامونه په ظلم سره کټ شوي وي.نو په دې سره د هغه
عدالت نه ساقطيږي.نود هغه ګواهي به هم قبلولې شي.البته که يوکس په رضا اوشوق خپلې خصيې ( هګۍ)
اوښکلې وي.نود هغه ګواهي به نشي قبلولې.

### د ولد الزنا د ګواهۍ حکم

وَوَلَدِ الزِّنَا اود ولد الزنا ګواهي به هم قبول وي. لِأَنَّ فِسْقَ الْأَبَوَيْنِ لَا يُوجِبُ فِسْقَ الْوَلَدِ ځکه چې د مورپلار فسق د اولاد
فسق نه واجبوي. كَكُفْرِهِمَا وَهُوَ مُسْلِمٌ لکه څنګه چې د مورپلار کفر( د ولد د شهادت لپاره مانع نه دي).حالانکه
ولد مسلمان دي.

تشریح:- ابو الحسين قدوري ﷫ فرمائي.چه د ولدالزنا ګواهي به نه قبليږي.ځکه چې د زنا ارتکاب کاوه سره
مورپلار فاسق کيږي.اود مورپلار فاسق کيدل،د هغوی د کافرکيدلو نه زيات نه دی.اود مورپلار کافرکيدل د
مسلمان خوی د شهادت نه مانع دې.يعني د مورپلار کافر کيدلو باوجود د مسلمان خوی شهادت قبلولې شي.نود
مورپلار فاسق کيدلو په صورت کې به د خوی شهادت په درجه اولی قبول وي.ددې تائيد د الله تعالی د قول ﴿وَلَا
تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ نه هم کيږي.ځکه چې د آيت په رڼاکې د مورپلار ګناه د اولاد په سر نه تپلې کيږي.

وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا تُقْبَلُ فِي الزِّنَا او امام مالك ﷫ فرمائي.چه د زنا په مقدمه کې به د ولد الزنا ګواهي نه
قبليږي. لِأَنَّهُ يُحِبُّ أَنْ يَكُونَ غَيْرُهُ كَمِثْلِهِ فَيُتَّهَمُ ځکه چې هغه به دا خبره خوښوي.چه د هغه نه علاوه هم دده مثل وي.نو
هغه به متهم وي.

حل اللغة: ① تقبل -قبلولې شي-② يتهم-تهمت به لګولې شي-③ يستحب-خوښ ګڼړي-④ يختار-غوره کوی

تشریح:- حضرت امام مالك ﷫ فرمائي.چه د ولدالزنا ګواهي به د زنا په مقدمه کې نشي قبلولې.ځکه هغه به داخبره
خوښوي.چه بل هم دده په مثل وي.لکه مثل ( متل) مشهور دې.چه قُبې ( دچا په ملا کې چې بوق وي) دا
غواړي.چه ټوله دنيا زما پشان شي.او هرکله چې هغه دا خبره خوښوي.نو هغه به د زنا په مقدمه کې خپله ګواهۍ
کې متهم وي.اود متهم ګواهي نه قبليږي.نود هغه ګواهي به د زنا په مقدمه کې نه قبليږي.

قُلْنَا: الْعَدْلُ لَا يَخْتَارُ ذَٰلِكَ وَلَا يَسْتَحِبُّهُ سوږ وايو.چه عادل سړې به د دروغو ګواهي نه اختياروي. وَالْكَلَامُ فِي الْعَدْلِ اونه
به دا خوښوي.او بحث په عادل کې دې.

تشریح:- زموږ د اړخه خواب دادې.چه زموږ کلام په هغه صورت کې دې.کله چې ولدالزنا عادل وي.او عادل سړې
صرف په دې وجه چې بل سړې زما پشان شي.دروغ ګواهي نه ورکوي.اونه د بل په نسبت داسې خوښوي. اوهرکله



چې دا خبره ده.نو ولدالزنا به پخپله ګواهۍ کې متهم نه وي.او هرکله چې ولدالزنا پخپله ګواهۍ کې متهم نه
دي.نود هغه په ګواهۍ قبلولو کې څه نقصان دې.

### د خنثی د ګواهۍ حکم

قَالَ وَشَهَادَةُ الْخُنْثَى جَائِزَةٌ اود خنثی ګواهي جائز ده.

تشریح:- خنثی هغه دې.په کوم کس کې چې د سړي او ښځې دواړو علامت مورزاده (پيدائشي) وي.نوکه خنثی عادل
وي.نود هغه ګواهي به قبول وي.

لِأَنَّهُ رَجُلٌ أَوِ امْرَأَةٌ وَشَهَادَةُ دليل دا دې چې هغه سړې دې.يا ښځه ده. الْجِنْسَيْنِ مَقْبُولَةٌ بِالنَّصِّ اود نص په رو سره د دواړو
ګواهي مقبول ده.

حل اللغة: ① رجل -سړې-② امراة-ښځه-③ العمال کارکونکي-④ اعوان-مدد کونکي

تشریح:- دليل دا دې چې دا به سړې وي.يا به ښځه وي.اود قرآن نه ثابته ده.چه د دواړو ګواهي مقبول ده.لکه ارشاد
دې. ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ۖ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ احتياط دادې.چه خنثی
سره يو سړې او يوه ښځه ګواهي ورکړي.ځکه خنثی که ښځه وي.نو په دې صورت کې به يو سړې او دوې (دوه)
ښځې ګواه وي.اوکه خنثی سړې وي.نو په دې صورت کې به دوې (دوه) سړي ګواه وي.اوښځه به زياتي وي.او دا
هم مناسب ده. چې په حدودو اوقصاص کې د خنثی ګواهي قبول نکړې شي.ځکه چې په خنثی کې د ښځې
کيدلوهم احتمال دې.حالانکه په حدودو او قصاص کې د ښځو ګواهۍ نه قبليږي.

### د عمال د ګواهۍ حکم

وَشَهَادَةُ الْعُمَّالِ جَائِزَةٌ اود عمال ګواهي جائز ده. وَالْمُرَادُ عُمَّالُ السُّلْطَانِ عِنْدَ عَامَّةِ الْمَشَايِخِ اود عامة المشائخ په نيز د
سلطان عمال مراد دی. لِأَنَّ نَفْسَ الْعَمَلِ لَيْسَ بِفِسْقٍ ځکه چې نفس عمل فسق نه دې. إِلَّا إِذَا كَانُوا أَعْوَانًا عَلَى الظُّلْمِ
خوکله چې دا خلګ په ظلم باندې مددګار وي.

تشریح:- ابوالحسين قدوري ﷫ فرمائي.چه د عمال ګواهي جائز ده.اود عمال نه د سلطان( بادشاه) هغه عمال مراد
دی.کوم چې د حقوق واجبه په وصولولو کې د سلطان مدد کوي.لکه د خراج او سوائمو(څريدونکي څاروی) زکاة
وصولونکي حضرات،ځکه چې عمل کول پخپله څه فسق نه دې.او عامل کيدل فسق ځکه نه دې.چه لوئي لوئي
صحابه﷢ عمال وو.البته که عمال د سلطان بادشاه په ظلم باندې مددګار وي.لکه نن صبا چې د سلطان په ظلم
باندې د سلطان کومك کوي.نود هغوی ګواهي به نه قبليږي. ځکه چې په ظلم باندې د کومك کاوه په وجه د هغوی
عدالت ساقط شوي دي.

وَقِيلَ الْعَامِلُ إِذَا كَانَ وَجِيهًا فِي النَّاسِ ذَا مُرُوءَةٍ لَا يُجَازِفُ فِي كَلَامِهِ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ او ويلې شوي دي.چه هرکله عامل
په خلګ وکې وجيه قدرمند وي.پخپل کلام کې فضول ( بکواس) خبرې نه کوي.نود هغه شهادت به قبول وي.
كَمَا مَرَّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي الْفَاسِقِ لکه څنګه چې د فاسق په اړه کې د ابويوسف ﷫ نه (ددوی په حواله)
تيرشوي دي

حل اللغة: وجيه -مخوريز-يجازف-عبث کوي -يقدم-اقدام کوي-مهابة-عزت

تشریح:- بعض حضرات فرمائي.که عامل په ظلم باندې مددګار وي.خو په خلګ وکې قدرمند او عزت مند وي.او
فضول او ناجائز خبرې نه کوي.نود هغه ګواهي به هم قبلولې شي.لکه څنګه چې د امام ابويوسف ﷫ نه د فاسق په
سلسله کې تيرشوي دی.که فاسق قدرمند او مرتبې والا وي.نود هغه ګواهي به قبلولې شي.

لِأَنَّهُ لِوَجَاهَتِهِ لَا يُقْدِمُ عَلَى الْكَذِبِ حِفْظًا لِلْمُرُوءَةِ ځکه چې هغه به د خپل عزت په وجه دروغ باندې اقدام ( زړه ورتيا) نه
کوي.چه دده عزت محفوظ پاتې شي. وَلِمَهَابَتِهِ لَا يُسْتَأْجَرُ عَلَى الشَّهَادَةِ الْكَاذِبَةِ اود خپل هيبت په وجه به په دروغ

ګواهۍ باندې په اجرت هم نشي اخستلې کېدلې.

تشریح:- دلیل دا دی چې په ظلم باندې مددکونکې عامل د خپلې مرتبې (او عزت) په وجه په دروغو باندې اقدام (او زړه ورتیا) نه کوي.چه دده مرتبه محفوظ شي.او د خپل هیبت په وجه په دروغ ګواهۍ باندې اجیر او مزدور نشي جوړیدلې.نو هرکله چې د هیبت او عزت په وجه د دروغو تهمت ختم شو.نود ګواهۍ په قبلولو کې هیڅ باك نشته.

**په وصي جوړولو باندې د دوي (دوه) سړو د ګواهۍ حکم**

قَالَ وَإِذَا شَهِدَ الرَّجُلَانِ أَنَّ أَبَاهُمَا أَوْصَى إِلَى فُلَانٍ او که دوي (دوه) سړو ګواهي ورکړله.چه ددوی پلار فلانی سړی وصی مقرر کړې دي. وَالْوَصِيُّ يَدَّعِي ذَلِكَ فَهُوَ جَائِزٌ اسْتِحْسَانًا وَإِنْ أَنْكَرَ الْوَصِيُّ لَمْ يَجُزْ او وصی هم ددې مدعی دې.نودا استحسانا جائزده.که وصی منکر وي.نو جائز نه ده.

تشریح:- په دې عبارت کې پنځه مسئلې ذکر دی.① دوي (دوه) سړو داګواهي ورکړله.چه زموږ مرحوم پلار حامد وصی مقرر کړې دې.او وصی یعنی حامد هم ددې مدعی دې.② دوي (دوه) سړو (چې ددوی لپاره د مال وصیت شوې دې) دا ګواهي ورکړله.چه فلانی مرحوم حامد خپل وصی مقرر کړې دې.او حامدهم د خپل وصی کیدلو مدعی دې.③ دوي (دوه) قرضخواهانو چې ددوی په مړي باندې قرضه ده.داګواهي ورکړله.چه فلانی مړي حامد خپل وصی مقرر کړې دې.او حامد هم ددې مدعی دې.④ دوي (دوه) قرضدارانو چې په دوی باندې د مړي قرضه ده.دا ګواهي ورکړله.چه فلانی مړي حامد خپل وصی مقرر کړې دې.او حامد هم ددې مدعی دې.⑤ دوي (دوه) وصیانو دا ګواهي ورکړله.چه فلانی مړي حامد زموږ سره خپل وصی مقرر کړې دې.او حامد هم ددې مدعی دې.....ددې پنځه واړه مسئلو کې حکم دادې.چه شهادت استحساناً جائز دې.او که وصی یعنی حامد د خپل وصی کیدلو منکر وي.نودا شهادت نه قیاساً جائز دې.او نه اسحساناً جائز دې.

وَفِي الْقِيَاسِ: لَا يَجُوزُ وَإِنِ ادَّعَى،او په قیاس کې جائز نه ده.اګرچه مدعی وي. وَعَلَى هَذَا إِذَا شَهِدَ الْمُوصَى لَهُمَا بِذَلِكَ أَوْ غَرِيمَانِ لَهُمَا عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ أَوْ لِلْمَيِّتِ عَلَيْهِمَا دَيْنٌ ا او هم په دې کله چې دوي (دوه) سړو (دچا لپاره چې وصیت شوې دې) ددې ګواهي ورکړله.یا دوي (دوه) قرضخواهانو دچا چې په مړي باندې قرضه ده. أَوْ شَهِدَ الْوَصِيَّانِ أَنَّهُ أَوْصَى إِلَى هَذَا الرَّجُلِ مَعَهُمَا. یا په چا چې د مړي قرضه ده. وَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّهَا شَهَادَةٌ لِلشَّاهِدِ لِعَوْدِ الْمَنْفَعَةِ إِلَيْهِ د قیاس وجه داده.چه دا ګواهي پخپله د ګواه لپاره ده.ځکه چې ددې ګواهۍ فائده پخپله ګواه ته رسیږي.

حل اللغة: ① غریمان -تثنیه د غریم،قرضخواه-② المیت-مړی-③ عود-واپس کیدل-④ المنفعة-فائده

تشریح:- د وصی د مدعی کیدلو په صورت کنبې د قیاس وجه داده.چه په ذکر شوي پنځو مسئلوکې د ګواهۍ نفع پخپله ګواهانو ته رسیږي.او هرهغه ګواهي چې د هغې نفع پخپله ګواه ته رسیږي.نشي قبلولې.نو په ذکر شوي مسئلوکې د ګواهانو ګواهي نه قبلیږي.

پاتې شوه داخبره چې په ذکرشوې مسئلوکې د ګواهۍ نفع پخپله ګواه ته څنګه رسیږي.نو ددې ځواب دادې.چه په رومبۍ مسئله کې د ګواهانو یعنی د دواړه وارثانو دا فائده ده.چه دوی ته یو کارګزاره ملاو شو.چې هغه به ددوی حقوق ژوندی کړي.او دوی ته به ددوی دمیراث حق ورکړي.په دویمه او دریمه مسئله کې دا فائده ده.چه ګواه یعنی،،موصی لهما او قرضخواه،، به د وصی په ذریعه خپل مال وصیت او مال دین وصول کړي.په څلورمه مسئله کې فائده داده.چه ګواه یعنی قرضدار به وصی ته د پور مال ورکړي.او پخپله به بری شي.او په پنځمه مسئله کې دا فائده ده.چه ګواهانو یعنی دواړه وصیانو ته به په مال کې د تصرف کاوه او د بل نه د مطالبه کولوکې یو مددګار ملاو شي.بهرحال په پنځه واړه صورتونوکې د ګواهانو څه ناڅه نفع ده.او په ګومه کې چې د ګواهانو نفع ګډ وي.هغه ګواهي د تهمت په وجه نه قبلیږي.نو په ذکر شوي صورت کې به هم د ذکر شوي ګواهانو ګواهي نه قبلیږي.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ لِلْقَاضِي وِلَايَةَ نَصْبِ الْوَصِيِّ إِذَا كَانَ طَالِبًا او د استحسان وجه داده.چه قاضی ته د وصی مقررولو



پخپله اختیار دې.کله چې ددې طالب وي. وَالْمَوْتُ مَعْرُوفٌ فَيَكْفِي الْقَاضِي بِهَذِهِ الشَّهَادَةِ مُؤْنَةَ التَّعْيِينِ او مرګ مشهور وي نو قاضی به ددې شهادت په وجه د تعیین د تکلیف نه کفایت کوي.دا نه چې د هغه لَا أَنْ يَثْبُتَ بِهَا شَيْءٌ فَصَارَ كَالْقُرْعَةِ ګواهۍ په وجه به څه شي ثابت شي.نودا د قرعه (اندازۍ) پشان شو.

حل اللغة: ① ولایة -اختیار-② نصب-مقرر کیدل-القرعة-③ قرعه اندازي-④ مؤنة-مشقت

تشریح:- د اسحسان وجه داده.چه قاضی ته د وصی مقررولو پخلپله اختیار دې.کله چې وصی پخپل وصی کیدلو باندې راضی وي.او د مړي مړ کیدل خلګ وکې مشهور وي.یعنی که د مړي مړ کیدل ثابت شي.او د هغه هیڅ څوك وصی نه وي.یا د مړي وصی وي.خو هغه د خپل عاجز کیدلو دعوه کړې وي.نو په دواړه صورتونوکې د قاضي لپاره د وصی مقررولو اختیار دې.چه د خلګو مالونه د ضائع کاوه نه محفوظ شي. اضی باندې دا واجب دی.چه هغه داسې کس صوی منتخب کړي.چه هغه امانتدار دیانتدار، دیندار، هوښیار او کارګزار وي.نو په ذکرشوې مسئلوکې د حامد وصی کیدل د ګواهانو په ګواهۍ سره نه دی ثابت شوي.بلکه دهغه وصی کېدل د قاضی په حکم سره ثابت شوی دی.البته په دې ګواهۍ سره قاضی د وصی د دیانت او امانت شرط سره د متعین کاوه زحمت نه بچ شو.یعنی قاضی ته چې د وصی لټون کاوه کوم تکلیف (او زحمت) کول ضروري وو.ددې ګواهۍ په وجه ددې محنت نه بچ شو.ددې ګواهۍ مثال داسې دې.لکه قرعه اندازي،چه په قرعه اندازۍ سره څه شي نشي ثابتیدلې.بلکه د نورو مقاصدو لپاره قرعه اچولې شي.مثلاً قاضی د یوځاني بتواره (تقسیم) اوکړو .اوفیصله ئې اوکړله.چه فلانی ته دومره ورکړې شي.او فلانی ته دومره ورکړې شي.خودا فیصله ئې اونکړله.چه کوم کس ته کوم اړخ ورکړې شي.بلکه هغوی په قرعه سره پخپله دا کار اوکړو.نو په قرعه اچولو سره قاضی ددې زحمت او تکلیف نه بچ شو.دغه ډول قاضی ته د مړي لپاره د وصی مقررولو لپاره غور کول ضروري وو.چه ددې کار لپاره به څوك مناسب وي.او څوك مناسب نه دې.نو قاضی حامد پخپله اختیار سره وصی مقرر کړو.او په ذکرشوې ګواهۍ سره ئې د هغه وصی کیدل نه دی ثابت کړي.بلکه ګواهۍ سره صرف د لټون کاوه تکلیف نه بچ شوې دې.

حاصل دا چه شهادت په حقیقت کې شهادت نه دې.بلکه د وصی په تعین کولوکې د قاضی مددکول دی.او هرکله چې دا شهادت په حقیقت کې شهادت نه دې.نودا وئیل چې ددې شهادت نفع ګواهانو ته رسیږي.غلط دی.بلکه داسې به وئیلی شي.چه د قاضی په وصی مقررولو سره دغه خلګو ته نفع رسیږي.پخپله د هغوی ګواهي چونکه په حقیقت کې ګواهي نه ده.په دې وجه د هغوی په ظاهري ګواهۍ سره هغوی ته هیڅ نفع نه رسیږي.

وَالْوَصِيَّانِ إِذَا أَقَرَّا أَنَّ مَعَهُمَا ثَالِثًا يَمْلِكُ الْقَاضِي نَصْبَ ثَالِثٍ مَعَهُمَا او کله چې دواړه وصیانو اقرار اوکړو.چه د دواړو سره دریم وصی دې.نو قاضی به دې دواړو سره د یو دریم وصی مقررولو مالك وي. لِعَجْزِهِمَا عَنِ التَّصَرُّفِ بِاعْتِرَافِهِمَا ځکه چې دا دواړه دخپل اقرار په وجه د تصرف کاوه عاجز دی.

حل اللغة: ① نصب-مقرر کول-② عجز-عاجزي کیدل-③ اعتراف-اقرار-④ یملك-مالك کیږي

تشریح:- دا عبارت د یو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه په پنځمه مسئله کې هرکله د مړي لپاره د وړاندې نه دوي (دوه) وصیان مقرر دی.نو قاضی ته د دوهم وصی مقررولو هیڅ اړتیا نشته.نو دریم وصی به د رومبی دوي (دوه) وصیانو په شهادت سره مقرر کیږي.او هرکله چې دریم وصی د مخکنی دوي (دوه) وصیانو په شهادت سره مقرر شوې دې.او په دې شهادت کې د دواړه وصیانو نفع هم ده.لکه څنګه چې وړاندې تیر شو.نودا دواړه وصیان به پخپل شهادت کې متهم وي.او د متهم فی الشهادت ګواهي نه قبلیږي.نو ددوی ګواهي هم قبلول پکار نه وو؟

ځواب ددې ځواب دادې.چه دواړه وصیانو هرکله دا اقرار اوکړو.چه موږ سره یو دریم سړې هم وصی دې.نوګویا دوی دواړو ددې خبرې اقرار اوکړو.چه موږ د دواړو کارونو پوره کاوه نه عاجز یو.او هرکله چې دا دواړه د کار پوره کولونه عاجز شو.نود قاضی لپاره به دا اختیار وي.چه هغه ددوی سره یو دریم وصی مقرر کړي.نودا دریم وصی د قاضی په مقررولو سره مقرر شوې دې.د دواړه وصیانو په شهادت سره نه دې مقرر شوې.د هغوی په شهادت سره صرف دا فائده شوې ده.چه قاضی د وصی لټون کاوه تکلیف نه بچ شوې دې.بهرحال هرکله دریم وصی د قاضی

په مقررولو سره مقرر شوي دي.او ددې وصيانو په مقررولو سره نه دي مقرر شوي.نود هغوی به پخپل شهادت کي د متهم کيدلو سوال هم نه پيدا کيږي.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا أَنْكَرَا وَلَمْ يُعْرَفِ الْمَوْتُ** په خلاف ددې کله چې وصي انکار اوکړو.يا مرګ مشهور نه وي. **لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ نَصْبِ الْوَصِيِّ فَتَكُونُ الشَّهَادَةُ هِيَ الْمُوجِبَةُ** خکه چې قاضي ته د وصي مقررولو ولايت نشته.نوهم دا ګواهي به موجب وي.

**حل اللغة:** ① انكر-انکار اوکړو-② ولاية-اختيار-③ نصب-مقرر کيدل-④ الموجبة-واجبونکې

**تشريح:-** البته که وصي دخپل وصي کيدلو منکر وي. يا د مړي مړکيدل په خلګو کي مشهور نه وي.نو په دې دوارو صورتونوکي به د ذکر شوي حضراتو ګواهي قبول نه وي.خکه چې د وصي منکرکيدلو په صورت کي قاضي ته دا اختيار نشته چه دې هغه لره په وصي قبلولو باندې مجبور کړي.اود مړي مرګ دنه مشهور کيدلو په صورت کي هم قاضي ته د وصي مقررولو ولايت حاصل نه دې.نوهرکله چې په دواړه صورتونوکي قاضي ته د وصي مقررولو ولايت نشته.نو په دې دوارو صورتونوکي د ذکرشوي ګواهانو په ګواهئ سره به وصي کيدل ثابت وي.او وړاندې تير شوي دي.چه ذکر شوي حضرات پخپل شهادت کي متهم دي.اود متهم ګواهي نه قبليږي.نو په دې دوارو صورتونوکي به هم د هغوی ګواهي نه قبليږي.

**وَفِي الْغَرِيمَيْنِ لِلْمَيِّتِ عَلَيْهِمَا دَيْنٌ تُقْبَلُ الشَّهَادَةُ** اود دوارو قرضدارانو په صورت کي په چاچه د مړي قرضه ده.ګواهي به قبلولې شي. **وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْمَوْتُ مَعْرُوفًا لِأَنَّهُمَا يُقِرَّانِ عَلَى أَنْفُسِهِمَا** اګرچه مرګ مشهور نه وي.خکه چې دا دواړه پخپل ذات باندې د پور اقرار کوي. **فَيَثْبُتُ الْمَوْتُ بِاعْتِرَافِهِمَا فِي حَقِّهِمَا** نو ددوی دوارو په حق کي به ددوی دوارو په اقرار سره مرګ ثابت شي.

**حل اللغة:** ① الغريمين-تثنيه د غريم،قرضخواه-② يقران-تثنيه،اقرار کوي-③ يثبت-ثابتيږي-④ اعتراف-اقرار

**تشريح:-** په خلورم صورت کي هرکله چې دواړه قرضدارانو په چاچه د مړي قرضه ده.دا ګواهي ورړ کړله.چه مړي حامد خپل وصي مقرر کړې دی.نودا ګواهي به قبول وي.اګرچه د مړي مړکيدل خلګ وکي مشهور نه وي.خکه چې دا دواړه حضرات پخپل ذات باندې د پور اقرار کوي.نو تهمت منتفي شو.خکه چې په دې اقرار کي دهغوی نفع کم او نقصان زيات دې.او هرکله چې نقصان زيات دې.نودا پخپله د هغوی د ذات خلاف شهادت شو.اود انسان شهادت (اقرار) د خپل ذات خلاف قبلولې شي.نود هغوی شهادت به هم مقبول وي.او پاتې شو د مړي مړکيدل،نو هغه ددوی دوارو په اقرار سره ثابتيږي.

## د پلار په اړه کښي دبل په وکيل جوړولو باندې د ګواهئ ورکولو حکم

**وَإِنْ شَهِدَا أَنَّ أَبَاهُمَا الْغَائِبَ وَكَّلَهُ بِقَبْضِ دُيُونِهِ بِالْكُوفَةِ** اوکه دوې (دوه) سړو ګواهي ورکړله.چه ددوی غائب پلار فلانې په کوفه کي د خپلو قرضو وصولولو وکيل کړې دي. **فَادَّعَى الْوَكِيلُ أَوْ أَنْكَرَهُ لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُمَا** نو وکيل دعوه اوکړله.يا ئې انکار اوکړلو.نو ددوی دوارو شهادت به قبول نه وي.

**حل اللغة:** ① وكل-مقرر کړې ئې دې-② ديون-جمع د دين،قرض-③ ادعى-دعوى اوکړله-④ تقبل-قبلولې به شي

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.که دوې (دوه) سړو دا ګواهي ورکړله.چه زموږ پلار (چې غائب دې) فلانې سړې مثلاً خالد ئې په دې خبره وکيل کړې دې.چه هغه په کوفه کي دهغه پور وصول کړي.نود هغوی دا ګواهي به نه قبليږي.که هغه (خالد) د خپل وکيل کيدلو مدعي وي.اوکه منکر وي.

**لِأَنَّ الْقَاضِيَ لَا يَمْلِكُ نَصْبَ الْوَكِيلِ عَنِ الْغَائِبِ** دليل دا دې چې دغائب د اړخه قاضي ته د وکيل مقررولو اختيار نشته. **فَلَوْ ثَبَتَ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِشَهَادَتِهِمَا وَهِيَ غَيْرُ مُوجِبَةٍ لِمَكَانِ التُّهْمَةِ** نو که وکالت ثابت وي.نو ددوی دوارو ګواهي به ثابت وي.او ددوی دوارو ګواهي د تهمت په وجه موجب نه ده.



**تشريح:-** دليل دادې.چه قاضي ته د غائب د اړخه د وکيل مقررولو اختيار نشته.نودا وکالت به د قاضي په حکم سره نه ثابتيږي.بلکه ددې ګواهانو په ګواهئ سره به ثابتيږي.او په دې ګواهئ کي تهمت دې.په دې طريقه چې خامنو د خپل پلار په حق کي ګواهي ورکړې ده.اود تهمت په وجه ګواهي نه قبليږي.نو ددوی دوارو ګواهي به هم نه قبليږي.

## په خالص جرح کښې د قاضي لپاره حکم

**قَالَ وَلَا يَسْمَعُ الْقَاضِي الشَّهَادَةَ عَلَى جَرْحٍ** فرماني.په خالص جرح به قاضي شهادت نه آوري. **وَلَا يَحْكُمُ بِذَلِكَ** اونه به د هغې مطابق حکم ورکوي.

**حل اللغة:** ① يسمع -اوري-② جرح-عيب-③ مجرد-صرف-④ يحكم-فيصله کوي

**تشريح:-** د مسئلې صورت دادې.چه مدعي پخپله دعوه باندې ګواهان پيش کړل.خو مدعى عليه پخپلو ګواهانو باندې جرح مجرد اوکړه.(جرح مجرد هغه ده.چه دهغې په وجه نه د شريعت حق واجبيږي.اونه د بنده حق واجبيږي.اوجرح مجر دحاکم د حکم لاندې هم نه داخليږي.) مثلاً وې وئيل.چه د مدعي دا ګواهان فاسقان دی.يا زناکار دی.يا شرابيان دی.يا سود خپاره دی.او مدعى عليه په خپله دې جرح مجرد باندې ګواهان هم پيش کړل.نو قاضي به په دې جرح مجرد باندې دمدعى عليه د ګواهانو ګواهي نه قبلوي.اونه به ددې جرح مطابق حکم ورکوي.

**لِأَنَّ الْفِسْقَ مِمَّا لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ** دليل دا دې چې فسق د هغه څيزونو څنې دې.کوم چې د قاضي د حکم لاندې نه داخليږي. **لِأَنَّ لَهُ الدَّفْعَ بِالتَّوْبَةِ فَلَا يَتَحَقَّقُ الْإِلْزَامُ** خکه چې هغه په توبه سره لرې کيږي.نو الزام به نه متحقق کيږي.

**حل اللغة:** يدخل -داخليږي-تحت-لاندې-الرفع-پورته کيدل-يتحقق-ثابتيږي

**تشريح:-** دليل دادې.چه قاضي شهادت خکه قبلوي.چه ددې شهادت په بنا (بنياد) باندې حکم ورکړي.هرکله چې د حکم ورکاوه لپاره شهادت قبلولې شي.نو ضروري ده.چه مشهود به داسې شئ وي.کوم چې د حاکم د حکم لاندې داخليدې شي.او جرح مجرد چې ددې حاصل د مدعي ګواهانو ته فاسق وئيل دی.هغه د حاکم د حکم لاندې نه داخليږي.خکه چې د حاکم حکم د مشهود به لازمول دی.حالانکه د قاضي او حاکم په توان کي فسق لازمول نشته.خکه فسق داسې شئ دې.کوم چې د توبه په ذريعه لرې کيدلې شي.نوهرکله چې فسق د توبه په ذريعه لرې کولې شي.نوبه فسق کي به دالزام معنى نه متحقق کيږي.او هرکله چې په دې کي د الزام معنى نه متحقق کيږي.نودا به دحاکم د حکم لاندې هم نه داخليږي.او هرکله چې فسق د حاکم د حکم لاندې نه داخليږي.نو په دې به شهادت هم نه قبليږي.خکه چې شهادت په هغه شئ قبلولې شي.کوم شئ چې د حاکم د حکم لاندې داخليدې شي.

**وَلِأَنَّهُ هَتْكُ السِّتْرِ وَالسَّتْرُ** او خکه چې په داسې کاوه کي پرده اخستل دی. **وَاجِبٌ وَالْإِشَاعَةُ حَرَامٌ** حالانکه پواړه واجب دی.او خورول حرام دی.او **وَإِنَّمَا يُرَخَّصُ ضَرُورَةَ إِحْيَاءِ الْحُقُوقِ وَذَلِكَ فِيمَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ** پرده اخستل د حقوقو ژوندی کاوه اړتيا سره جائز کيږي.اودا دداسې شئ په دعوه کي دی.کوم چې د قضاء د حکم لاندې داخليږي

**حل اللغة:** ① هتک -ښکاره کيدل-② الستر-پرده-③ الاشاعة-خورول-④ احياء-ژوندی کول

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه د مدعى عليه د ګواهانو،د مدعي د ګواهانو په فاسق کيدلو،يا زناکار کيدلو،يا په شراب څښلو ،يا په سود خور کيدلو باندې ګواهي ورکول،يعنى په جرح مجرد باندې ګواهي ورکول، پخپله د مدعى عليه ګواهان فاسق کوي.اود فاسق ګواهي نه قبليږي.نود مدعى عليه د ګواهانو ګواهي به هم نه قبليږي. پاتې شوه داخبره،چه په ذکر شوې ګواهئ سره د مدعى عليه ګواه څنګه فاسق کيږي؟ نو ددې ځواب دادې.چه په دې ګواهئ سره به د مسلمانانو يعنى د مدعي د ګواهانو پرده واخستلې شي.اود هغوی بدکاری به خلګو کي مشهوره شي.حالانکه د ګناهونو پواړه واجب او د اړتيا نه بغير خورول حرام دی.لکه چې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ يعنى،،کوم خلګ چې غواړي.چه عامه

دي شي بدکاري،په ایماندارو کي ،د هغوی لپاره په دنیااو اخرت کي دردناك عذاب دي. اوګورئ الله تعالی د
فاحشه او بدکاري ( گناه) خورولو باندي سخت وعید بیان کړي دي.او وعید په فعل حرام باندي راځي.نود فاحشه
او بدکاري خورولو فعل حرام شو.اود فعل حرام مرتکب فاسق وي.نود بدکاري او گناهونو خورونکي به فاسق
وي.نو هرکله چي د مدعی علیه گواهانو د قاضي په ډك مجلس کي د مدعی گواهانو ته زناکار، شرابیان،
سودخواره،او فاسق او فاجر اوونیل.نود مدعی علیه گواه د اشاعت فاحشه په وجه پخپله فاسق شو.اود فاسق
گواهي چونکه نه قبلیږي.خکه به د مدعی علیه د گواهانو گواهي هم نه قبلیږي.البته د شریعت او بنده گانو حقوق
ژوندي کاوه په غرض سره د بدکاري او فاحشه د خورولو اجازت ورکړي شوي دي.او حقوق ژوندي کول د قاضي د
حکم لاندي هم داخلیږي.

إِلَّا إِذَا شَهِدُوا عَلَى إِقْرَارِ الْمُدَّعِي خوکه گواهانو گواهي ورکړله په دي اره کي د مدعی په اقرار باندي،، نو قاضي به
حکم ورکوی، يُقْبَلُ ذَلِكَ لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مِمَّا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ خکه چي اقرار دهغه څیزونو څني دي.کوم چي د قاضي د
حکم لاندي داخلیږي.

تشریح:- «الا اذا شهدوا.......الخ» مستثنی منقطع ده.او ددي تعلق «لان الفسق مما لایدخل تحت الحکم» سره
دي.حاصل دادي.چه د مدعی علیه گواهانو که د مدعی د گواهانو فاسق کیدلو گواهي ورکړله.اودا ني اوونیل چه
دا فاسق دي،یعني د زناکاري،یاد شرابو څښلو ،یا د سود خوري عادتیان دي.نودا گواهي به نشي قبلولي.خکه
چي فسق د قاضي دحکم لاندي نه داخلیږي.خوکه د مدعی علیه گواهانو گواهي ورکړله.چه مدعی دا اقرار کړي
دي.چه زما گواهان فاسقان دي.نو قاضي به د هغه گواهي قبلوي.اود هغي مطابق به حکم ورکوی.خکه اقرار
داسي شی دي.چه د حاکم د حکم لاندي داخلیږي.

**د مدعی په گواهانو باندي په کرایه سره د نیولو د گواهي ورکولو حکم**

قَالَ وَلَوْ أَقَامَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ أَنَّ الْمُدَّعِيَ اسْتَأْجَرَ الشُّهُودَ لَمْ تُقْبَلْ وکه مدعی علیه په دي خبره باندي بینه پیش کړل چه
مدعی گواهان په اجرت باندي نیولي دي.نودا گواهي به نشي قبلولي. لِأَنَّهُ شَهَادَةٌ عَلَى جَرْحٍ مُجَرَّدٍ خکه چي دا په جرح
مجرد باندي شهادت دي.

تشریح:- صورت د مسئلي دادي.چه مدعی د خپلي دعوي ثابتولو لپاره د قاضي په مجلس کي کوم گواهان پیش
کړي دي.که مدعی علیه په هغوی باندي جرح اوکړله.او په دي خبره ني گواهان پیش کړل.چه مدعی دا گواهان په
اجرت باندي حاصل کړي دي.نود مدعی‌علیه دا بینه به نشي قبلولي.خکه چي دا د مدعی‌علیه د اړخه په جرح
مجرد باندي شهادت پیش کول دي.او وړاندي تیرشوی دي.چه په جرح مجرد باندي شهادت نه قبلیږي.نود مدعی
علیه د اړخه پیش کړي شوي مذکوره شهادت به هم نشي قبلولي.

وَالْاِسْتِئْجَارُ وَإِنْ كَانَ أَمْرًا زَائِدًا عَلَيْهِ فَلَا خَصْمَ او په اجرت باندي اخستل،اگرچه په جرح مجرد باندي یو زیاتی امر
دي.خو مدعی علیه ددي په ثابتولو کي خصم نه دي. فِي إِثْبَاتِهِ لِأَنَّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ فِي ذَلِكَ أَجْنَبِيٌّ عَنْهُ اخکه چي مدعی
علیه په دي اړه کي مدعی نه اجنبی نه دي.

حل اللغة: ① اثبات -ثابتول- ② اجنبي -دریمگړي- ③ الخصم -جگړه کونکي- ④ الاستیجار -په مزدوري سره نیول

تشریح:- دا عبارت د یو سوال خواب دي.سوال دادي.چه د مدعی علیه دا ونیل چي مدعی د کرایه گواهان پیش
کړي دي.دا جرح مجرد نه ده.بلکه په دي کي یو امرزائد ثابتول دي.او هغه امر زائد د مدعی گواهان په کرایه
باندي حاصلول دي.اود امرثابتول د مدعی حق ثابتول دي.البته په دي سره ضمناً جرح هم ثابتیږي.په دي طریقه
چي کله هغه اوونیل چه دا د کرایه گواهان دي.نو گویا دا ني اوونیل.چه دا گواه دروغجن او فاسقان فاجران
دي.بهرحال هرکله چي مدعی اصلاً د مدعی حق استیجار ثابت کړي دي.او جرح ضمناً ثابت شوي ده.نودا جرح
مجرد پاتي نشوه.بلکه جرح غیرمجرد شوه.خکه په کومه جرح کي چي د بنده حق ثابتیږي.هغي ته جرح غیرمجرد



ویلي شي.او وړاندي تیر شوی دي.چه په جرح غیرمجرد باندي چي کوم شهادت پیش کولي شي.هغه قبلولي
شي.نود مدعی علیه دا شهادت هم قبلول پکار دي؟
خواب"ددي خواب دادي.چه د گواهانو په اجرت باندي اخستل ثابتول،اگرچه په جرح مجرد باندي یو امر زائد
دي.خو مدعی علیه د مدعی لپاره د کوم حق په ثابتولو کي ،د مدعی د اړخه څه نائب او خصم نه دي.بلکه په دي
اره کي دهغه نه اجنبي دي.اود مدعی علیه اجرت سره هیڅ تعلق نشته.په دي وجه د مدعی علیه لپاره حق
استیجار ثابتول به معتبر نه وي.او هرکله چي د مدعی لپاره حق استیجار ثابتول معتبر نشو.نو صرف جرح پاته
شوه.اوبه خالص جرح او جرح مجرد باندي گواهي نه قبلیږي.نود مدعی علیه د اړخه پیش کړي شوي مذکوره
گواهي به هم نه قبلیږي.

حَتَّى لَوْ أَقَامَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ تر دي که مدعی علیه بینه پیش کړل. أَنَّ الْمُدَّعِيَ اسْتَأْجَرَ الشُّهُودَ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ لِيُؤَدُّوا الشَّهَادَةَ چي
مدعی د لس درهمو په عوض گواهان ددي لپاره اجرت باندي نیولي دي.چه دوی گواهي اداکړي. وَأَعْطَاهُمُ الْعَشَرَةَ
مِنْ مَالِي الَّذِي كَانَ فِي يَدِهِ تُقْبَلُ او دي گواهانو ته ني لس درهم دهغه مال نه ورکړي دي.کوم مال چي د مدعی په
قبضه کي ( زما) موجود وو.نود مدعی علیه دا بینه به نه قبلیږي. لِأَنَّهُ خَصْمٌ فِي ذَلِكَ خکه چي مدعی علیه په دي اره
کي خصم جوړ شوي دي ثُمَّ يَثْبُتُ الْجَرْحُ بِنَاءً عَلَيْهِ بیا به جرح په دي بناء باندي ثابتیږي.

حل اللغة: ① قام -قائم کړی- ② الشهود- گواهان- ③ عشرة-لس- ④ اعطی-ورکړي دي

تشریح:- که مدعی علیه په دي خبره باندي گواه پیش کړل.چه مدعی د لس درهمو په عوض گواهان په کرایه باندي
اخستي دي.چه دوی گواهي ورکړي.او دغه لس درهم ني زما د مال نه ورکړي دي.کوم چي د مدعی په قبضه کي
موجود وو.نود مدعی علیه دا گواه قبلولي شي.او قاضي به ددي مطابق حکم ورکوی.خکه مدعی علیه چي هرکله
دا اوونیل.چه مدعی د اجرت رقم یعني لس درهم زما د مال نه ورکړي دي.نو مدعی علیه په دي اړه کي د مدعی
خصم شو.بیا به جرح په دي باندي مبنی ثابتیږي.یعني مدعی علیه خو په اصل کي دا ونیلي دي.چه د اجرت رقم
زما د مال نه ورکړي شوي دي.خو په دي خبره به هم مبنی وي.چه د مدعی گواه دروغجن او فاسقان فاجران
دي.اودا بهرحال د مدعی علیه د اړخه جرح ده.خو په دي جرح کي د بنده یعني د مدعی علیه حق هم ثابتیږي.خکه
به دا جرح مجرد نه وي.بلکه جرح غیرمرکب او غیرمجرد به وي.او په جرح غیرمجرد باندي گواهي قبلولي
شي.لکه څنگه چي وړاندي تیر شو.نو په دي صورت کي به هم د مدعی علیه د اړخه پیش کړي شوي گواهي
قبلولي شي.

وَكَذَا إِذَا أَقَامَهَا وهم دغه ډول که مدعی علیه په دي خبره باندي بینه قائم کړل.چه عَلَى أَنِّي صَالَحْتُ الشُّهُودَ عَلَى كَذَا
مِنَ الْمَالِ وَدَفَعْتُهُ إِلَيْهِمْ ما ددي گواهانو سره په دومره قدري مال باندي دا صلح کړي وه عَلَى أَنْ لَا يَشْهَدُوا عَلَيَّ بِهَذَا
الْبَاطِلِ چي زما خلاف ددي باطل خبري گواهي مه ورکوئ.او هغه مال ما دوی ته ورکړي هم دي. وَقَدْ شَهِدُوا وَطَالَبَهُمْ
بِرَدِّ ذَلِكَ الْمَالِ حالانکه دوی گواهي ورکړله.او مدعی علیه د هغوی نه د هغه مال واپس کاوه مطالبه اوکړله.

حل اللغة: ① صالحت -ما صلح کړي- ② الدفع -ورکول- ③ الرد- واپس کول- ④ طالب-طلب کوي

تشریح:- دغه ډول که مدعی علیه په دي خبره باندي بینه پیش کړل.چه ما د مدعی دي گواهانو سره په دومره اندازه
مال باندي دا صلح کړي وه.چه زما خلاف ددي غلط خبري گواهي مه ورنکړي.حالانکه دي گواهانو زما خلاف
گواهي ورکړي ده.او ما دوی ته هغه مال ورکړي دي.( په کوم چي صلح شوي ده).نو مدعی علیه ددي گواهانو نه
مطالبه اوکړله.چه دوی زما مال واپس کړي.نود مدعی علیه بینه به قبلولي شي.خکه چي دا جرح غیرمجرد ده.او
په جرح غیرمجرد باندي بینه قبلولي شي.البته که مدعی علیه دا نه وی ونیلي.چه ما دوی ته مال اداکړي دي.نودا
به جرح مجرد وي.او په دي به بینه نشي قبلولي.خکه چي په جرح مجرد باندي شهادت نه قبلیږي.او په جرح
غیرمجرد باندي قبلولي شي.

وَهٰذَا اللَّفْظُ په دې وجه موږ اوونیل. أَمَّا لَوْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ أَنَّ الشَّاهِدَ عَبْدٌ که مدعی علیه بینه پیش کړل. چه ګواه غلام دی. أَوْ مَحْدُودٌ فِي قَذْفٍ یا محدود فی القذف دی. أَوْ شَارِبُ خَمْرٍ یا شراب څکونکې دی. أَوْ قَاذِفٌ یا بهتان لګونکې دی. أَوْ شَرِيكُ الْمُدَّعِي تُقْبَلُ یا د مدعی شریك دی. نود مدعی دا بینه به نه قبلیږی.

تشریح:- او په جرح مجرد باندې شهادت نه قبلیږی. او په جرح غرمجرد باندې قبلولې شی. په دې وجه علامه مرغینانی رحمه الله اوفرمائی. که مدعی علیه په دې خبره باندې بینه قائم کړل. چه د مدعی ګوهان غلامان دی. یا محدود فی القذف دی. یا شراب څکونکی دی. یا بهتان لګونکی دی. یاد مال په دعوه کې د مدعی سره شریك دی. نود مدعی علیه دا بینه به قبلولې شی. څکه چې په دې تولو صورتونو کې جرح غیرمجرد ده. او په جرح غیرمجرد باندې بینه قبلولې شی. نو په دې صورتونو کې به هم د مدعی علیه بینه قبلولې شی.

چې په دې صورتونو کې ګواهی څکه قبلولې شی چې دا جرح غیر مجرد ده او جرح غیر مجرد دې ته وائی. په کوم کې چې د الله تعالی یا د بنده حق ثابتیږی. او په ذکر شوی صورتونو کې دا خبره موجود ده. څکه چې هرکله مدعی علیه دا اوونیل. چه د مدعی ګواهان غلامان دی. نو ګویا مدعی علیه د ګواهانو رقیق کیدل ثابت کړل. او رقیق کیدل حکماً یو ډول ضعف دې. ددې اثر دا وی. چه د رقیق ولایت سلب کولې شی. اود یو کس ولایت سلب کول د الله تعالی حق دې. نو ګواهانو ته غلام ونیلو سره د الله تعالی دا حق ثابت کړې شوې دې. او هرکله چې نې دا اوونیل چه د مدعی ګواهان محدود فی القذف دی. نو ګویا دا نې اوونیل. چه ددوی شهادت مردود دې. اود یو کس شهادت مردود کول داهم د الله تعالی حق دې. اوکله نې چې دا اوونیل. چه د مدعی ګواهان شراب څکونکی دی. ددوی شراب څکلی دی. نوګویا دا نې اوونیل. چه په دوی باندې حد شرب خمر واجب دې. او حد شرب خمر هم د الله تعالی حق دې. او هرکله نې چې دا اوونیل. چه د مدعی ګواهان بهتان لګونکی دی. نوګویا دانې اوونیل. چه په دوی باندې حد قذف واجب دې. او په حد قذف کې اګرچه د بنده هم حق دې. اود الله تعالی حق هم دې. خود الله تعالی حق غالب دې. بهرحال په دې صورتونو کې چونکه د الله تعالی حق ثابتیږی. څکه به په دې تولو صورتونو کې جرح غیر مجرد وی. او که مدعی علیه په دې باندې بینه قائم کړل. چه د مدعی ګواهان د مال په دعوه کې د مدعی سره شریك دی. نود مدعی ګواهان به پخپله دعوه کې متهم وی. اود متهم ګواهی مردود وی. نود مدعی علیه بینه به قبول وی. اود مدعی د ګواهانو ګواهی به مردود وی.

## ګواهی ورکول، او پخپله بعض ګواهئ کښې د شك کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ شَهِدَ وَلَمْ يَبْرَحْ فرمائی. اوچا چې ګواهی ورکړله. او (د خپل ځائې نه) اخوا نشو. حَتّٰى قَالَ أَوْهَمْتُ بَعْضَ شَهَادَتِي تردې چې وې ونیل. چه ماته پخپل بعض ګواهئ کې وهم اوشو. وَمَعْنٰى قَوْلِهِ أَوْهَمْتُ أَيْ أَخْطَأْتُ بِنِسْيَانِ مَا كَانَ يَحِقُّ عَلَيَّ ذِكْرُهُ أَوْ بِزِيَادَةٍ كَانَتْ بَاطِلَةً أَوْ د ماتن د قول «او همت» معنی داده. چه کوم ماته په حق طور باندې ذکر کول وو. ما هغه هیرکړل. او خطا شوم. یاکوم چې غلط وو. هغه نې زیات کړل. فَإِنْ كَانَ عَدْلًا جَازَتْ شَهَادَتُهُ نوکه هغه عادل دې. نود هغه ګواهی به جائز پاتې وی.

حل اللغة: ① یبرح -دخپل ځائې نه اخوا کیږی -② اخطات -زه خطا شوم -③ نسیان -هیره -④ اوهمت -ماګمان کړې وو

تشریح:- صورت د مسئلې دادې. که یوکس ګواهی ورکړله. او تر اوسه پورې د قاضی د مجلس نه نه دې جلا شوې. بلکه هم دلته کې په ولاړه ولاړه اوونیل. چه په ګواهئ کې ماته څه خطا شوې ده. نود قاضی په نیز که د هغه عادل کیدل ښکاره وی. نود هغه ګواهی به جائز پاتې وی. د خطاء کیدلو مطلب دادې. چه کوم شې بیانول ضروری وو. هغه هیر شو. او بیان نې نکړل. یاد کوم شئ بیانول چې غلط وو. هغه نې زیاتی کړل.

وَوَجْهُهُ أَنَّ الشَّاهِدَ قَدْ يُبْتَلٰى بِمِثْلِهِ لِمَهَابَةِ مَجْلِسِ الْقَضَاءِ او ددې وجه داده. چه د قضاء د مجلس د هیبت [illegible] ګواه کله کله په داسې خبره کې اخته کیږی. فَكَانَ الْعُذْرُ وَاضِحًا فَتُقْبَلُ إِذَا تَدَارَكَهُ فِي أَوَانِهِ وَهُوَ عَدْلٌ نو عذر [illegible] کله نې



چې پخپل وخت کې ددې تدارك اوکړو (راوې ګرځولو) او هغه عادل دې. نو ګواهی به قبلولې شی.

حل اللغة: ① یبتلی -اخته کیږی -② مهابة -رعب -③ واضح -ښکاره -④ اوانه -وخت

تشریح:- دلیل دادې. چه د قاضی د مجلس د هیبت په وجه ګواه کله کله په داسې قسمه هیره او خطاء کې اخته کیږی. نود ګواه عذر واضح دې. او هرکله چې د ګواه عذر واضح دې. نود هغه شهادت به قبول وی. په دې شرط چې ګواه عادل وی. او ددې غلطئ راګرځول هم ددې په وخت کې اوکړی. اود راګرځول وخت د قاضی د مجلس نه د جدا (جلا) کیدلو نه وړاندې دې.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَامَ عَنِ الْمَجْلِسِ ثُمَّ عَادَ وَقَالَ أَوْهَمْتُ[1] په خلاف ددې کله چې هغه د مجلس نه پاسیدلو. بیا واپس راغی. او وې ونیل. چه زه په وهم کې پریوتلم. لِأَنَّهُ يُوهِمُ الزِّيَادَةَ مِنَ الْمُدَّعِي بِتَلْبِيسٍ وَخِيَانَةٍ فَوَجَبَ الْاِحْتِيَاطُ څکه چې په دې کې د مدعی د اړخه د تلبیس یا خیانت په طور د زیاتوالی وهم دې. نو احتیاط واجب دې.

حل اللغة: ① عاد -واپس شو -② تلبیس -ګډوډ کول -③ یوهم -وهم پیدا کوی -④ الاحتیاط -احتیاط

تشریح:- که ګواه د قاضی د مجلس نه پاسیدلو. او لاړلو. او بیا واپس راغی. او وې ونیل. چه زما نه په ګواهی ورکاوه کې خطاء شوې ده. نود هغه ګواهی به نه قبلیږی. څکه په دې صورت کې دا وهم دې. چه مدعی مدعی به ګواه ته څه لالچ ورکړې وی. او څه اضافه به نې کړې وی. مثلاً په پیل کې نې اوونیل. چه د مدعی په مدعی علیه باندې پنځه سوه روپئ دی. بیا د قاضی د مجلس نه د جلا کیدلو نه روسته واپس راغی. او وې ونیل. چه زمانه په ګواهئ کې غلطی اوشوه. د مدعی په مدعی علیه باندې پنځه سوه نه، بلکه یو زر روپئ دی. اودا هم وهم دې. چه مدعی علیه به ګواه ته لالچ ورکړې وی. او څه کمی به نې کړې وی. مثلاً ګواه په پیل کې اوونیل. چه د مدعی په مدعی علیه باندې یو زر روپئ دی. بیا د قاضی د مجلس نه د جداکیدلو نه روسته واپس راغی. او وې ونیل. چه یو زر نه، بلکه پنځه سوه روپئ دی. بهرحال د قاضی د مجلس نه د جلا کیدلو په صورت کې چونکه د مدعی یا مدعی علیه د اړخه د خیانت او دهوکې وهم دې. په دې وجه ددې ګواهئ نه قبلول، او احتیاط کول واجب دی. اود قاضی د مجلس نه د نه جلا کیدلو په صورت کې چونکه دا وهم نشته. څکه به په دې صورت کې ګواهی قبلولې شی.

وَلِأَنَّ الْمَجْلِسَ إِذَا اتَّحَدَ لَحِقَ الْمُلْحَقُ بِأَصْلِ الشَّهَادَةِ فَصَارَ كَكَلَامٍ وَاحِدٍ، او څکه چې که مجلس متحد وی. نو ملحق اصل شهادت سره ملاویږی. نودا د کلام واحد پشان شو. وَلَا كَذٰلِكَ إِذَا اخْتَلَفَ. او کله چې مجلس مختلف وی. نو داسې نه ده. وَعَلٰى هٰذَا إِذَا وَقَعَ الْغَلَطُ فِي بَعْضِ الْحُدُودِ أَوْ فِي بَعْضِ النَّسَبِ او هم په دې باندې کله چې په بعضې حدود یا نسب کې غلطی واقع شی.

حل اللغة: ① اتحد -چه یو وی -② الغلط -غلطی -③ لحق -یوځائې شی -④ اختلف -اختلاف اوکړی

تشریح:- دوهم دلیل دادې. چه د مجلس نه د نه جداکیدلو په صورت کې چونکه د ګواه مجلس متحد دې. اود مجلس په اتحاد کې متفرقات جمع کولې شی. یعنی که په یو مجلس کې متفرق کلام وی. نو هغه هم یو کلام شمارلې کیږی. څکه به د ګواه کلام ملحق (کوم زیاتې کمې چې لاحق کړې شوې دې) د اصل شهادت سره ملاوولې شی. او کلام واحد به جوړیږی. اود ګواه شهادت ثانیه یعنی په ګواهئ کې به ترمیم قبلولې شی. خوکله چې ګواه د قاضی د مجلس نه جلا شو. نو د هغه د دواړو کلامونو په منځ کې د مجلس د اختلاف په وجه انقطاع شوې ده. او هرکله چې د دواړو کلامونو په منځ کې انقطاع اوشوه. نو ملحق (کوم چې لاحق کړې شوې دې) به اصل شهادت سره نه ملاویږی. او دده شهادت به نه قبلیږی. څکه چې هغه خپل ابتدائی کلام پخپله رد کړې دې. نود هغې د قبلولو

[1]) القول الراجح هوهذا ظاهر الرواية من عدم قبول الشهادة فی هذه الصورة كذا فی الدرالمختار(٤٣٠١٤) وتقریرات الرافعی (٢١٠١٢) والعناية (٤٩٨١٦) ومجمع الأنهر(٢٨٥١٣) نقلاً عن القول الراجح (١٣٥١٢)-

سوال د سره نه پيداکيږي.او ثاني کلام به د خيانت د تهمت په وجه نه قبليږي.د اتحاد مجلس اود مجلس د اختلاف په وجه چي په احکامو کي کوم توپير دي.دا توپير به هغه وخت وي.کله چي د يو حد يا نسب بيانولوکي غلطي واقع شي.مثلاً ګواهانو د زنا ګواهي ورکولوکي اوونيل.چه د زنا فعل د فلاني کور په مشرق اړخ کي واقع شوي دي.بيا که د قاضي په مجلس کي ني په ولاړه ولاړه اوونيل.چه نا بلکه په لويديځ اړخ کي واقع شوي دي.نودا شهادت او ترميم به قبلولي شي.اوکه دمجلس نه د جداکيدلو نه روسته دوباره واپس راغي.او وي ونيل.نودا شهادت به نه قبليږي.دغه ډول که د يوکس نسب بيانولوکي ،،خالد بن شاهد بن حامد،، بياني په مجلس کي دننه اوونيل.چه نا بلکه،،خالد بن عارف بن حامد،،نود هغه شهادت او ترميم به قبلولي شي.اوکه د مجلس نه د جداکيدلو نه روسته واپس راغي.اووي ونيل.نو نه به قبليږي.

وَهٰذَا إِذَا كَانَ مَوْضِعَ شُبْهَةٍ،اودا هغه وخت دي.کله چي د شبهي موقع وي. فَأَمَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ اوکه د شبهي مقام نه وي.نود کلام په اعاده کولوکي هيڅ باك نشته. فَلَا بَأْسَ بِإِعَادَةِ الْكَلَامِ مِثْلُ أَنْ يَدَعَ لَفْظَةَ الشَّهَادَةِ وَمَا يَجْرِي مَجْرَى ذٰلِكَ أَصْلًا ګواه لفظ د شهادت پريږدي.يا ددي قائم مقام وي. وَإِنْ قَامَ عَنِ الْمَجْلِسِ بَعْدَ أَنْ يَكُونَ عَدْلًا اګرچه د مجلس نه پاسيدلي وي.پس ددي نه چي دي عادل وي.

حل اللغة:①-موضع -ځاني-②اعادة-راګرځول-③يدع- پريږدي-④يجري -جاري کيږي

تشريح:- په دي عبارت کي علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه د اتحاد مجلس په صورت کي د ګواه د اړخه د پيش کړي شوي ترميم قبلول،اود اختلاف مجلس په صورت کي نه قبلول هغه وخت دي.کله چي د فريب او شبه مقام وي.اوکه د شبه مقام نه وي.نود کلام اعاده او ترميم جائز دي.که مجلس متحد وي.اوکه مختلف وي.په دي شرط چي ګواه عادل وي.مثلاً ګواه په ابتداء کي ،،اشهد،، لفظ هير کړو.حالانکه ددي لفظ تلفظ د شهادت لپاره شرط دي.ياني د مدعی ياد مدعی عليه نوم په هيره پريښولو .ياني په دوی کي يوکس اړخ ته اشاره کول هيره کړله.بيا ني روسته خيال راغي.اود کلام اعاده ني اوکړله.نودا جائز دی.که په مجلس کي دننه ني اعاده کړي وی.اوکه د مجلس بدليدلو نه روسته ني اعاده کړي وی.خود ګواه عادل کيدل شرط دی.اوکه د ګواه عادل کيدل ښکاره نه دی.نو قاضي به د خلګو نه معلومات کوی.که هغوی اوونيل.چه دا ګواهی عادل دي.نو بيا به هم دهغه شهادت او ترميم قبلولي شی.اوکه وي ونيل.چه غيرعادل دي.نود هغه شهادت به نه قبليږي.ددي ځاني پوري واړه تفصيلات د ظاهرالرواية مطابق دی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ أَنَّهُ يُقْبَلُ قَوْلُهُ فِي غَيْرِ الْمَجْلِسِ اود امام ابوحنيفه او امام ابويوسف ﷭ نه روايت دي.چه په غيرمجلس کي به هم د هغه قول قبول وی. إِذَا كَانَ عَدْلًا، په دي شرط چي هغه عادل وی. وَالظَّاهِرُ مَا ذَكَرْنَاهُ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ او ښکاره هغه دي.کوم چي موږ ذکر کړو.

تشريح:- خود امام ابوحنيفه او امام ابويوسف ﷭ نه روايت دي.که ګواه عادل وی.نو دهغه قول او ترميم چي ځنګه د اتحاد مجلس په صورت کي قبلولي شی.دغه ډول د اختلاف مجلس په صورت کي به هم قبلولي شی.که د شبه مقام وی.اوکه نه وی. علامه مرغيناني ﷫ فرمائي.چه ظاهرالرواية هغه دي.کوم تفصيل چي وړاندي ذکر شوي دي.

## باب الاختلاف في الشهادة

(دا) باب په ګواهئ کي د اختلاف (په بيان کي) دي.

تشريح:- چونکه اتفاق اصل دي.او اختلاف د جهل او کذب وغيره عارض په وجه کيږي.نو هرکله چي اختلاف شهادت طبعاً موخر دي.نودا وضعاً هم موخرکړي شو.چه د وضع او طبع په منځ کي تناسب پاته شي.



### د دعوي موافق يا مخالف ګواهئ حکم

قَالَ الشَّهَادَةُ إِذَا وَافَقَتِ الدَّعْوٰى قُبِلَتْ که ګواهی د دعوي موافق وی.نو قبلولي به شی. وَإِنْ خَالَفَتْهَا لَمْ تُقْبَلْ اوکه د دعوي مخالف وی.نو قبلولي به نشي.

حل اللغة:①وافقت -موافق شي-②خالفت-مخالف شي-③وجدت -موجود شوه-④انعدمت-موجود نه شوه

تشريح:- دعوه واني.ددا سي سړی په مجلس کي دخپل حق مطالبه کول.چاته چي د حق ثابتيدلو نه روسته د خلاصي ور کاوه اختيار حاصل وی. ابو الحسين قدوری ﷫ فرمائي.که شهادت د دعوه موافق وی.نو قبلولي به شی.اوکه مخالف وی.نو قبلولي به نشي.

د موافق کيدلو مطلب دادي.چه دعوه او شهادت د نسب په اعتبار سره متحد وی. مثلاً که يوکس دعوه اوکړله.چه فلاني کس زما غلام دي.دا زما د فلانئ وينځي نه پيدا شوي دي.ګواه ګواهی ورکړله.چه ددي نه علاوه د بلي وينځي نه پيدا شوي دي.نو په نسبت کي د اتحاد نه کيدلو په وجه به شهادت د دعوي موافق نه وی.

يا د ملك په اعتبار سره متحد وی. مثلاً که يوکس دعوه اوکړله.چه فلاني شئ زما ملك دي.اوګواه ګواهی ورکړله.چه دده د خوی ملك دي.نو په ملك کي د اتحاد نه کيدلو په وجه به شهادت د دعوي موافق نه وی.

يا د وضع په اعتبار سره متحد وی. مثلاً که يو کس دعوه اوکړله.د مشرق اړخ د زمکي،او ګواه د لويديځ اړخ د زمکي ګواهی ورکړله.نو په وضع کي د اتحاد نه کيدلو په وجه به شهادت د دعوي موافق نه وی.

يا د انفعال،په اعتبار سره متحد وی.مثلاً که يوکس دعوه اوکړله.چه فلاني زما ژي اوشلوله.او په دي کي دننه شئ ني ضائع کړي دي.او ګواه ګواهی ورکړله.چه دا ژي پخپله د مدعی سره شليدلي ده.نو په فعل او انفعال کي د اتحاد نه کيدلو په وجه به شهادت د دعوي موافق نه وی.

يا د زمان اومکان په اعتبار سره متحد وی.مثلاً که يو کس دعوه اوکړله.چه فلاني زما پلار په يوم نحرکي په ديوبند کي قتل کړي دي.او ګواه ګواهی ورکړله.چه په يوم فطرکي ني سهارنپور کي قتل کړي دي.نو په زمان او مکان کي د اتحاد نه کيدلو په وجه به شهادت د دعوه موافق نه وی.

يا د کيف په اعتبار سره متحد وی مثلاً که يوسړي په بل کس باندي د سري کپړي پټولو دعوه اوکړله.او ګواه د سپيني کپړي ګواهی ورکړله.نو په کيف کي د اتحاد نه کيدلو په وجه به شهادت د دعوي موافق نه وی.

يا د نوع په اعتبار سره متحد وی مثلاً که يوسړي په بل کس باندي د لس دينارو دعوه اوکړله.او شاهد د لس درهمو شهادت ورکړو.نو په نوع کي د اتحاد نه کيدلو په وجه به شهادت د دعوي موافق نه وی.بهرحال په ذکرشوی ځيزونوکي که اتحاد اوموندي شو.نو شهادت به د دعوي موافق وی.ګني مخالف به وی.

لِأَنَّ تَقَدُّمَ الدَّعْوٰى فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ شَرْطُ قَبُولِ الشَّهَادَةِ، دليل دا دي چي د بنده ګانو په حقوقوکي د دعوي مقدم کيدل د شهادت د قبوليت لپاره شرط دي. وَقَدْ وُجِدَتْ فِيمَا يُوَافِقُهَا اودا په داسي ګواهئ کي اوموندي شو.کوم چي د دعوي موافق دي. وَانْعَدَمَتْ فِيمَا يُخَالِفُهَا او په داسي ګواهئ کي کومه چي د دعوي مخالف وی.دا خبره معدوم ده.

تشريح:- ددي دليل چي د موافقت په صورت کي به شهادت قبول وی.اود مخالفت په صورت کي به قبول نه وی.داده.چه په حقوق العباد کي د شهادت د قبوليت لپاره د دعوه مقدم کيدل شرط دی.اود موافقت په صورت کي دا شرط موجود دي.نو شهادت به قبول وی.اود مخالفت په صورت کي دا شرط معدوم دي.نو شهادت به قبول نه وی.

باتي شوه داخبره چي د شهادت د قبوليت لپاره ددعوي مقدم کيدل شرط ولي دی؟ نو ددي وجه داده.چه قاضي د خصوماتو د فيصلو لپاره مقرر وی.نود خصوماتو د فيصلي لپاره د خصومت مقدم کيدل ضروري دی.اود خصومت نه دعوه مراد ده.نود دعوي مخکي کيدل به ضروري وی.اود موافقت په صورت کي دا شرط ځکه موجود دي.چه شهادت واني.د دعوي تصديق کاوه ته.نو هرکله چي ګواه شهادت ورکوی.نو ګويا د دعوي تصديق کوی.اود تصديق لپاره ضروري دی.چه د کوم شئ تصديق اوکړي شی.هغه د وړاندي نه موجود وی.نود موافقت په

صورت کې ددعوې مقدم کېدل اومونديږ شو. او هرکله چې د دعوې مقدم کېدل کوم چې د شهادت د قبوليت لپاره شرط دې هغه اومونديږ شو. نو شهادت به هم قبول وي. اود مخالفت په صورت کې د شاهد صدق معتبر وي د مدعی صدق معتبر نه وي. نو شاهد چې کله د دعوې مخالفت اوکړي. نو ګويا هغه د دعوې تکذيب او ترديد اوکړو. او هرکله چې د دعوې تکذيب او ترديد اوشو. نود دعوې کېدل اونه کېدل برابر شو. اوهرکله چې د دعوې کېدل او نه کېدل برابر شو. نود دعوې تقدم کوم چې د شهادت د قبوليت لپاره شرط دې. اونه مونديږ شو او هرکله چې د قبوليت شرط اونه مونديږ شو. نو شهادت به هم قبول نه وي.

## د ګواهانو په ګواهۍ کښې د اتفاق حکم

قَالَ وَيُعْتَبَرُ اتِّفَاقُ الشَّاهِدَيْنِ فِي اللَّفْظِ وَالْمَعْنَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمائي. اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د دواړه ګواهانو په لفظ او معنی کې متفق کېدل معتبر دی. فَإِنْ شَهِدَ أَحَدُهُمَا بِأَلْفٍ وَالْآخَرُ بِأَلْفَيْنِ لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ عِنْدَهُ[1] نو که په دوی کې يو ګواه د يو زر ګواهي ورکړله. او دوهم د دوو زرو ګواهي ورکړله. نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به ګواهي نه قبليږي. وَعِنْدَهُمَا تُقْبَلُ عَلَى الْأَلْفِ إِذَا كَانَ الْمُدَّعِي يَدَّعِي الْأَلْفَيْنِ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به دوو زرو باندې ګواهي قبليږي. په دې شرط چې مدعی د دوو زرو دعوه کوي.

**تشريح:**- ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائي. چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ګواهانو په لفظ او معنی دواړو اعتبار سره متفق کېدل ضروري دی. خو که د ترادف په وجه لفظی اختلاف اوشو. نودا به مانع د شهادت نه وي مثلاً يو ګواه د هبه ګواهي ورکړله. او دوهم د عطيه ګواهي ورکړله. نودا ګواهي به قبلوليږ شي. اګرچه لفظی اختلاف دې. خودا اختلاف د ترادف په وجه دې. ځکه چې هبه او عطيه دواړه مترادف دی. بهرحال د امام صاحب رحمه الله په نيز د دواړو ګواهانو په لفظ کې هم متفق کېدل ضروري دی. په معنی کې هم متفق کېدل ضروري دی. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز صرف معنی کې متفق کېدل ضروري دی. لفظ کې متفق کېدل ضروري نه دی. نوکه مدعی په يوکس باندې د دوې (دوه) زره روپو دعوه اوکړله. او بيا ئې په دې باندې بينه پيش کړل. خو يو ګواه د يو زر روپو ګواهي ورکړله. او دوهم ګواه د دوو زرو روپو ګواهي ورکړله. نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دا ګواهي قبول نه وي. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به په کمتر باندې قبلوليږ شي.

وَعَلَى هَذَا الْمِائَةُ وَالْمِائَتَانِ، وَالطَّلْقَةُ وَالطَّلْقَتَانِ، وَالطَّلْقَةُ وَالثَّلَاثُ او هم په دې باندې د سلو او دوې (دوه) سوو، د يو طلاق او دوې (دوه) طلاقو، د يو طلاق او درې طلاقو اختلاف دې.

**تشريح:**- هم دا اختلاف هغه وخت دې. کله چې مدعی د دوو سوه روپو دعوه اوکړي. او دده يو ګواه د يوسل روپو ګواهي ورکړي. او دوهم د دوې (دوه) سوه ګواهي ورکړي. يا ښځې دعوه اوکړله. چه زما مېړه ماته دوې (دوه) طلاقونه راکړي دی. خو په ګواهانو کې يوکس د يو طلاق ګواهي ورکړله. او دوهم د دوې (دوه) طلاقو ګواهي ورکړله. يا ښځې د درې طلاقونو دعوه اوکړله. خو يو ګواه د يو طلاق ګواهي ورکړله. او دوهم د درې طلاقو ګواهي ورکړله. نود امام صاحب رحمه الله په نيز دا ګواهي باطل ده.

لَهُمَا أَنَّهُمَا اتَّفَقَا عَلَى الْأَلْفِ أَوِ الطَّلْقَةِ د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه دواړه ګواهانو په يو زر يا يو طلاق باندې اتفاق کړې دې. وَتَفَرَّدَ أَحَدُهُمَا بِالزِّيَادَةِ فَيَثْبُتُ مَا اجْتَمَعَا عَلَيْهِ او يو ګواه په زياتوالی سره متفرد دې. نو په کوم چې دواړه متفق دی. به ثابتيږي. دُونَ مَا تَفَرَّدَ بِهِ أَحَدُهُمَا او په کوم سره چې په دوی کې يو متفرد دې. هغه به نه ثابتيږي. فَصَارَ كَالْأَلْفِ وَالْأَلْفِ وَخَمْسِمِائَةٍ نودا د يو زر اود يو نيم زر پشان شو.

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول الإمام رحمه الله كذا في الدرالمنتقى (٣\٢٨٦) والهندية (٣\٥٠٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٣٧)-



**تشريح:**- په زيربحث مسئله کې د صاحبينو رحمهما الله په نيز به ګواهي په کمتر باندې قبلوليږ شي. دليل دادې. چه دواړه ګواهانو په کمتر باندې خو اتفاق کړې دې. يعنی د متن په مسئله کې په يو زر باندې، اود شرح په مسئله کې په سلو باندې او په يو طلاق باندې خو دواړه ګواهان متفق دی. البته يو ګواه څه زيادت کړې دې. يعنی د متن په مسئله کې ئې د يو زر زياتوالې کړې دې. اود شرح په مسئله کې ئې د سل، اود يو طلاق يا دوې (دوه) طلاقو زيادت کړې دې. نو په کوم مقدار باندې چې دواړه ګواهان متفق دی. يعنی يو زر، يا يوسل، يا يو طلاق هغه مقدار به ثابتوليږ شي. او په کوم مقدار چې صرف يو ګواه ګواهي ورکړې ده. يعنی زياتی يو زر، يا زياتی سل، يا زياتی يو طلاق يا دوې (دوه) طلاقه، هغه مقدار به د ګواه لپاره د پاتې کېدلو په وجه نه ثابتيږي. او ددې مثال داسې دی. لکه چې يوکس په بل باندې د يونيم زر روپو دعوه اوکړله. خو يو ګواه د يو زر ګواهي ورکړله. اويو د يو نيم زر ګواهي ورکړله. نود شاهدينو په يو زر باندې لفظاً او معناً د اتفاق کاوه په وجه به په يو زر باندې ګواهي بالاتفاق قبلوليږ شي. نو دغه ډول په ذکر شوې مسئله کې به هم په کمتر مقدار باندې ګواهي قبلوليږ شي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُمَا اخْتَلَفَا لَفْظًا، د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه دواړه ګواهانو لفظاً اختلاف کړې دې. وَذَلِكَ يَدُلُّ عَلَى اخْتِلَافِ الْمَعْنَى اودا د معنی په اختلاف باندې دلالت کوي. لِأَنَّهُ يُسْتَفَادُ بِاللَّفْظِ ځکه چې معنی د لفظ نه مستفاد کېږي. وَهَذَا لِأَنَّ الْأَلْفَ لَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنِ الْأَلْفَيْنِ بَلْ هُمَا جُمْلَتَانِ مُتَبَايِنَتَانِ ځکه چې لفظ الف (يو زر) د الفين (دوې (دوه) زرو) سره نه تعبير کېږي. بلکه دواړه جملې جلا جلا دی. فَحَصَلَ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا شَاهِدٌ وَاحِدٌ نو په دې کې يو باندې يو ګواه حاصل شو. فَصَارَ كَمَا إِذَا اخْتَلَفَ جِنْسُ الْمَالِ نو داسې شوه. لکه په جنس مال کې ئې اختلاف کړې وي.

**حل اللغة:** ① يستفاد - پيدا کېږي - ② الالف - زر - ③ الفين - دوې (دوه) زره - ④ حصل - حاصل شوه

**تشريح:**- د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه هرکله يو ګواه د يو زر ګواهي ورکړله. او دوهم د دوې (دوه) زره ګواهي ورکړله. نو دواړو لفظاً اختلاف کړې دی. اود لفظ اختلاف دلالت کوي. په اختلاف د معنی باندې. ځکه چې معنی د لفظ نه مستفاد کېږي. نو هرکله چې په لفظ کې اختلاف شو. نو په معنی کې به هم اختلاف وي. او اختلاف د لفظ په اختلاف د معنی باندې په دې وجه هم دلالت کوي. چه مثلاً لفظ الف (يو زر) سره دوې (دوه) زره مقدار نشی تعبير کولې. او په لفظ الفين (دوې (دوه) زره) سره د يو زر مقدار نشی تعبير کولې. نو په دواړه ګواهانو کې به د هريو کلام د دوهم د کلام مغاير وي. ځکه چې په دواړو کې د هريو د کلام مدلول د دوهم د کلام د مدلول مغاير او مباين دې. او هرکله چې دا خبره ده. نو په هر کلام باندې يو ګواه پاتې شو. يعنی په يو زر باندې يو ګواه پاتې شو. او په دوې (دوه) زره هم يو ګواه پاتې شو. اودا خبره وړاندې تيره شوې ده. چه شهادت د دوې (دوه) ګواهانو د ګواهۍ نوم دې. نود يو په کلام باندې هم شهادت تامه اونه مونديږ شو. او هرکله چې شهادت تامه اونه مونديږ شو. نودا به قبلوليږ هم نشی. اودا داسې شوه. لکه چې ګواهانو په جنس مال کې اختلاف کړې وي. مثلاً يو ګواه د زر درهمو او دوهم د سلو ديناړو ګواهي ورکړې وي. نودا ګواهي نشی قبلوليږ. نو هم دغه ډول د يو زر اود دوې (دوه) زره د اختلاف په صورت کې به هم ګواهي قبول نه وي.

## د دوو ګواهانو د کمی زياتی اختلاف په صورت کښې د مدعی د دعوې حکم

قَالَ وَإِذَا شَهِدَ أَحَدُهُمَا بِأَلْفٍ وَالْآخَرُ بِأَلْفٍ وَخَمْسِمِائَةٍ وکه په دوې (دوه) ګواهانو کې يو ګواه د يو زر، او دوهم ګواه د يونيم زر ګواهي ورکړله. وَالْمُدَّعِي يَدَّعِي أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ قُبِلَتِ الشَّهَادَةُ عَلَى الْأَلْفِ او مدعی هم د يونيم زر دعوه کوي. نو په يو زر باندې به ګواهي قبلوليږ شي.

**تشريح:**- دا معلومه شوې ده. چه د حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز د شاهدينو په لفظ او معنی کې متفق کېدل د شهادت د قبوليت شرط دې. هم په هغې باندې متفرع کاوه سره فرمائي. که په دواړه ګواهانو کې يوکس د يو زر درهمو ګواهي ورکړله. او دوهم د يوزر او پنځه سوه درهمو ګواهي ورکړله. او مدعی هم د يو نيم زرو دعوه کوي. نو

په یو زر درهمو به ګواهي قبلولې شي.

لِاتِّفَاقِ الشَّاهِدَيْنِ عَلَيْهَا لَفْظًا وَمَعْنًى، دلیل دا دي چې دواړه ګواهانو په یو زر باندې لفظاً او معناً اتفاق کړی دی.
لِأَنَّ الْأَلْفَ وَالْخَمْسَمِائَةِ جُمْلَتَانِ عُطِفَ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى وَالْعَطْفُ يُقَرِّرُ الْأَوَّلَ ځکه چې یو زر او پنځه سوه دوې (دوه) جملې دي.په دې دواړوکې د یو په بلې باندې عطف شوی دی.او عطف اول ثابتوي.

تشریح:- دلیل دا دي چې دواړه ګواه په یو زر باندې لفظاً هم متفق دی.او معنی هم متفق دی.معنی متفق کیدل
ښکاره دی.ځکه چې د یونیم زر په ضمن کې یو زر هم موجود دی.او لفظاً اتفاق ځکه دې.چه،،الالف والخمس مائة،،( یو زر او پنځه سوه) دوې (دوه) جملې دی.د دویمې جملې په ړومبۍ باندې عطف شوی دی.یعنی د،،خمس مائة،، په،،الف،، باندې عطف شوي دي.او عطف اول یعنی معطوف ثابتوي.نو کوم ګواه چې د یوزر او پنځه سوه ګواهي ورکړې ده.هغه هم اولاً د یو زر ګواهي ورکړې ده.نو په یو زر باندې د دواړو ګواهانو اتفاق اوموندې شو.او هرکله چې په یو زر باندې دواړه ګواهان لفظاً او معناً دواړه شان متفق شو.نود شهادت د قبولیت شرط موندلو په وجه په یو زر باندې به ګواهي قبلولې شي.

وَنَظِيرُهُ الطَّلْقَةُ وَالطَّلْقَةُ وَالنِّصْفُ، وَالْمِائَةُ وَالْمِائَةُ وَالْخَمْسُونَ او ددې مثال یو طلاق او یو نیم طلاق دی.او یوسل او یونیم سل دی.

تشریح:- ددې مثال دادې.که یو ګواه دچا د اړخه د یو طلاق ګواهي ورکړله.او یو د یو طلاق او نصف طلاق ګواهي ورکړله.او مدعي د یو او نصف طلاق دعوه کوي.نو یو طلاق به ثابتیږي.دغه ډول که یو ګواه د سل درهمو ګواهي ورکړله.او یو ګواه د یوسل پنځوس درهمو ګواهي ورکړله.او مدعي هم د یوسل پنځوس درهمو دعوه کوي.نود یو سل درهمو ګواهي به ثابتیږي.

بِخِلَافِ الْعَشَرَةِ وَالْخَمْسَةَ عَشَرَ لِأَنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهُمَا حَرْفُ الْعَطْفِ فَهُوَ نَظِيرُ الْأَلْفِ وَالْأَلْفَيْنِ په خلاف د لس او پنځلس،ځکه چې ددې په منځ کې حرف عطف نشته.نودا د یو زر او دوې (دوه) زره مثال دې.

تشریح:- خوکه یو ګواه د لس درهمو ګواهي ورکړله.او یو د پنځلسو درهمو ګواهي ورکړله.نو چونکه،،خمس عشر،،کې،،خمسة،،او،،عشر،،په منځ کې حرف عطف نشته.ځکه به د،،خمسة عشر،،یو حکم وی.اود،،خمسة عشر،،او صرف د،،عشر،،په منځ کې تبائن وی.نوګویا یو ګواه چې په کوم ګواهي ورکړې ده.دوهم د هغې خلاف ګواهي ورکړې ده.اوهرکله چې داسې ده.نود دواړه ګواهانو متفق کیدل اونه موندې شو.او هرکله چې د ګواهانو اتفاق اونشو.نو ګواهي به هم قبول نه وی.نودا د یوزر او دوې (دوه) زره مثال دې.

### د زرو مدعي لپاره د یونیم زرو د ګواهۍ حکم

وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِي لَمْ يَكُنْ لِي عَلَيْهِ إِلَّا الْأَلْفُ اوکه مدعي اوونیل.چه په مدعی علیه باندې زما د یو زر نه سوا هیڅ نه وو. فَشَهَادَةُ الَّذِي شَهِدَ بِالْأَلْفِ وَخَمْسِمِائَةٍ بَاطِلَةٌ نودهغه سړي ګواهي چاچه د یوزر اوپنځه سوه ګواهي ورکړې ده.باطل ده. لِأَنَّهُ كَذَّبَهُ الْمُدَّعِي فِي الْمَشْهُودِ بِهِ ځکه چې مدعی په مشهود به کې پخپله دهغه تکذیب کړی دی.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.که په دوې (دوه) ګواهانوکې یو ګواه د یو زرګواهي ورکړله.او بل ګواه د یونیم زر ګواهي ورکړله.او مدعي دعوه اوکړله.چه زما د یو زر نه علاوه په مدعی علیه باندې هیڅ نه وو.نوکوم ګواه چې د یو نیم زر ګواهي ورکړې ده.د هغه ګواهي به باطل وی.اود هغه ګواهي باطلیدلو نه روسته چونکه په دعوه باندې یو ګواه پاته شوی دی.اود یو ګواه په ګواهۍ باندې هیڅ نه ثابتیږي.ځکه فقط د یوسړي ګواهۍ سره به یو زر هم نه ثابتیږي.په زیادت یعنی یونیم زر باندې د ګواهۍ ورکونکی ګواهي ځکه باطل ده.چه د کوم مقدار هغه ګواهي ورکړې ده.مدعي پخپله د هغې تکذیب کړی دی.نود مدعي د تکذیب کاوه نه روسته د هغه د ګواهۍ قبلولو څه سوال پیدا کیږي؟



خو په دې باندې دا اعتراض دې.چه مدعي فقط په پنځه سوه کې د هغه تکذیب کړی دی.او په یو زر کې ئې د هغه تکذیب نه دې کړې.نو په یو زرکې د هغه شهادت معتبر منل پکار دی.او قاضی له د یو زر فیصله ورکول پکار دی.لکه مثلاً که یوکس د چا لپاره د یونیم زر روپو اقرار اوکړو.خو مقرله په پنځه سوه کې د هغې تکذیب اوکړو.او په یو زرکې ئې تصدیق اوکړو.نو قاضی به د یو زر فیصله کوی؟

ددې ځواب دادې.چه مدعي د ګواه تکذیب اوکړو.نو ګویا هغه ئې فاسق اوګرځولو.اود فاسق شهادت معتبر نه وی.ځکه به د هغه د ګواه شهادت معتبر نه وی.او دوهم ګواه چونکه خائله دې.ځکه به د هغه په ګواهۍ باندې فیصله نشی کولې.او پاتې شو اقرار،نود مقر( اقرارکونکی) عادل کیدل شرط نه دی.نود مقرله، مقر لره د فاسق ګرځولو باوجود به دهغه اقرار معتبر وی.او قاضی به د هغه په اقرار باندې فیصله ورکوی.

وَكَذَا إِذَا سَكَتَ إِلَّا عَنْ دَعْوَى الْأَلْفِ اوهم دغه ډول کله ئې چې د یو زر د دعوې نه د علاوه نه چوپوالې اختیار کړې وی.
لِأَنَّ التَّكْذِيبَ ظَاهِرٌ فَلَا بُدَّ مِنَ التَّوْفِيقِ ځکه چې تکذیب ښکاره دې.نو توفیق ضروری دې.

حل اللغة:①سکت -چپ شو-②تکذیب -دروغژن کول-③التوفیق-موافقت-④ظاهر-ښکاره

تشریح:- دغه ډول که مدعي د یو زر دعوه اوکړله.اود پاتے په اړه کې ئې چوپوالې اختیار کړله.نه ئې تصدیق اوکړو.او نه ئې تکذیب اوکړو.نو بیا به هم قاضی د مدعي لپاره د یو زر فیصله نه ورکوی.ځکه چې مدعي هرکله د یو زر دعوه اوکړله.نو ګویا د پنځه سوه په اړه کې ئې په یو نیم زر باندې د ګواهۍ ورکونکی تکذیب اوکړو.حاصل دادې.چه په دې صورت کې هم د مدعي د اړخه تکذیب په ښکاره طور ثابت دې.اوهرکله چې د مدعي د اړخه تکذیب ثابت دې.نود مدعي دعوه او په یونیم زر باندې د ګواهي ورکونکي ګواهۍ کې توفیق ور کاره نه بغیر به شهادت هم نه قبلیږي.او هرکله چې د یو ګواه شهادت نه قبلیږي.نود دوهم ګواه د یواځې والی په وجه به دهغه په ګواهۍ به هم څه فیصله نشی ورکولې.

وَلَوْ قَالَ كَانَ أَصْلُ حَقِّي أَلْفٌ وَخَمْسُمِائَةٍ وَلَكِنِّي اسْتَوْفَيْتُ خَمْسَمِائَةٍ او که مدعي اوونیل.چه زما اصلی حق یو زر او پنځه سوه وو.خو ما پنځه سوه وصول کړلې. أَوْ أَبْرَأْتُهُ عَنْهَا قُبِلَتْ لِتَوْفِيقِهِ یا مدعی علیه مې د پنځه سوه نه بری کړو.نود هغه د توفیق ور کاوه په وجه به ګواهي قبلولې شي.

حل اللغة:①استوفیت -ما پوره حاصل کړل-②ابرات-ما بری کړو-③خمس ماة-پنځه سوه-④توفیق-موافقت

تشریح:- البته که مدعي اوونیل.چه زما اصل حق خو یونیم زر وو.خو ما پنځه سوه روپۍ وصول کړی دی.یا ما مدعی علیه د پنځه سوه روپو نه بری کړلو.نود مدعي پخپله دعوه اود ګواه په ګواهۍ کې د توفیق ور کاوه په وجه به د هغه ګواهي قبلولې شي.یعنی د مدعي دعوه اود ګواه د ګواهۍ په منځ کې داسې موافقت اوشو.چه ګواه د اصلی معاملې یعنی د یونیم زر ګواهي ورکړله.او مدعي ددې په منځ کې واقعه بیان کړله.چه ما دده نه پنځه سوه روپۍ وصول کړی دی.یا معاف کړی دی.چه د هغې ګواه ته خبر نه وو.نوما د یو زر دعوه اوکړله.نوپه دې طریقه چونکه په دعوه اوګواهۍ کې موافقت اوشو.په دې وجه په یونیم زر باندې کومه ګواهي ورکړې شوې ده.هغه به هم قبلولې شي.او قاضی به په یو زر باندې خپله فیصله ورکوی.

### دوې (دوه) ګواهانوکښې د یو په پنځه سوه اداکولو باندې د ګواهۍ ورکولو حکم

قَالَ وَإِذَا شَهِدَا بِأَلْفٍ وَقَالَ أَحَدُهُمَا قَضَاهُ مِنْهَا خَمْسَمِائَةٍ که دواړه ګواهانو د یو زر ګواهي ورکړله.او په دوی کې یو ګواه اوونیل.چه مدعی علیه مدعي ته پنځه سوه اداکړی دی. قُبِلَتْ شَهَادَتُهُمَا بِالْأَلْفِ[1] نو په زرو به د دواړو ګواهي

[1] القول الراجح هو هذا ظاهر الرواية من قبول شهادتهما بالالف كذا فی فتح القدیر(۶\۵۰۷) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۳۷)-

قبلولې شي. لِاتِّفَاقِهِمَا عَلَيْهِ ځکه چې په دې مقدار باندې دواړه ګواهان متفق دي. وَلَمْ يَتِمَّ قَوْلُهُ أَنَّهُ قَضَاهُ خَمْسَمِائَةٍ اود ګواه قول چې مدعی علیه پنځه سوه اداکړې دي.اوریدلې به نشي. لِأَنَّهُ شَهَادَةُ فَرْدٍ إِلَّا أَنْ يَشْهَدَ مَعَهُ آخَرُ ځکه چې دا د یو سړي ګواهي ده.خودا که دوهم سړي دده سره وي.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یو سړي په بل سړي باندې د یو زر روپو دعوه اوکړله.او دوې (دوه) ګواهانو د مدعی په حق کې د یو زر روپو ګواهي ورکړله.خو یو ګواه اووئیل.چه مدعی علیه ددې نه پنځه سوه ر... ۱۰۱ کړې دي.نو په یو زر به د دواړو ګواهي قبلولې شي.اود یو ګواه دا ووئیل.چه مدعی علیه پنځه سوه روپۍ ادا کړې دي.مسموع او قابل قبول به نه وي.په یو زر باندې د دواړو ګواهي به ځکه قبلولې شي.چه دواړه ګواهان په یو زر روپو باندې متفق دي.اود پنځه سوه روپو ادا کاوه قول به ځکه نشي قبلولې.چه دا صرف د یو سړي ده.حالانکه د یو سړي ګواهۍ سره هیڅ حق نه ثابتیږي.ځکه که دوهم سړي هم دده سره وي.اود پنځه سوه روپو ادا کاوه ګواهي ورکړي.نو ګواهي به قبلولې شي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ يَقْضِي بِخَمْسِمِائَةٍ، اود ابویوسف ﷫ نه نقل دي.چه د پنځه سوه حکم به ورکولې شي. لِأَنَّ شَاهِدَ الْقَضَاءِ مَضْمُونُ شَهَادَتِهِ أَنْ لَا دَيْنَ إِلَّا خَمْسَمِائَةٍ ځکه چې د پنځه سوه درهم ادا کاوه د ګواهۍ ورکونکي (ګواه) د شهادت مضمون دادې.چه قرضه صرف پنځه سوه درهم ده. وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا او ددې ځواب هم هغه دې.کوم چې موږ

حل اللغة: ① یقضی -فیصله کوی-② مضمون-موضوع-③ جواب-حکم-④ دین-قرض

تشریح:- په زیربحث مسئله کې د حضرت امام ابویوسف ﷫ نه نقل دي.چه قاضی به صرف د پنځه سوه روپو حکم ورکوی.یعنی ددې شهادت په نتیجه کې به په مدعی علیه باندې صرف پنځه سوه روپۍ اداکول واجب وي.

او دلیل دادې.چه کوم ګواه د پنځه سوه روپو ۱۰۱ کاوه ګواهي ورکړې ده.دهغه د ګواهۍ مضمون دا دې. چې د مدعی علیه په ذمه صرف د پنځه سوه روپو قرضه ده.نودا داسې شوه.ګویا یو ګواه د یو زر ګواهي ورکړې ده.او دوهم د پنځه سوه روپو ګواهي ورکړې ده.او په داسې صورت کې قاضی ته په اقل مقدار باندې د فیصله ور کاوه اجازت وي.

علامه مرغینانی ﷫ فرمائي.چه د امام ابویوسف ﷫ د دلیل ځواب هغه دې.کوم چې موږ بیان کړې دې.یعنی په ابتداء کې د یو زر په ګواهۍ باندې دواړه ګواهان متفق دي.خو پنځه سوه روپۍ ادا کاوه باندې صرف یو سړې ګواه دې.اود یوسړي ګواهي نشي قبلولې.نود پنځه سوه روپو ادا کاوه ګواهي به مردود وي.او په یو زر باندې د دواړه ګواهانو د متفق کیدلو په وجه به په یو زر باندې ګواهي قبول وي.

## په اداکولو باندې د علم په صورت کښې د ګواهۍ ورکولو حکم

قَالَ يَنْبَغِي لِلشَّاهِدِ اود ګواه لپاره مناسب دي. إِذَا عَلِمَ بِذَلِكَ أَنْ لَا يَشْهَدَ بِأَلْفٍ چې کله هغه ته دا معلومه شي.چې مدعی علیه پنځه سوه روپۍ اداکړې دي.نو هغه دې د زرو ګواهي نه ورکوی. حَتَّى يُقِرَّ الْمُدَّعِي أَنَّهُ قَبَضَ خَمْسَمِائَةٍ ... ددې چې مدعی دا اووائي.چه ما په پنځه سوه روپو باندې قبضه کړې ده. كَيْ لَا يَصِيرَ مُعِينًا عَلَى الظُّلْمِ چې هغه په ظلم باندې اعانت کونکې نه وي.

حل اللغة: ینبغی -مناسب دی-یقر-اقرار کوی-یصیر-ګرځي-معین-امدادی

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه یو سړي په دوهم سړي باندې د یو زر روپو د پور دعوه اوکړله.او په دې دعوه باندې مدعی سره دوې (دوه) ګواهان موجود دي.خو په دوی کې یو ګواه ته دا معلومه ده.چه مدعی علیه پنځه سوه روپۍ مدعی ته اداکړې دي.نودا ګواه دې د یو زر روپو ګواهي هغه وخت پورې نه ورکوی. ترکومه پورې چې مدعی اقرار اونکړي.چه ما پنځه سوه روپۍ مدعی علیه نه وصول کړې دي.ځکه که د مدعی د اقرار نه وړاندې ګواه دا ګواهي ورکړله.چه د مدعی په مدعی علیه باندې یو زر روپۍ پور دي.نودا ګواه به په ظلم باندې د مدعی کومک



کونکې وي.په دې طریقه چې د مدعی علیه په ذمه د مدعی د یو زر روپو په ګواهۍ باندې خو دواړه ګواهان متفق دي.خو یو ګواه په دې خبره باندې شاهد دې.چه مدعی علیه په د هغې نه پنځه سوه روپۍ اداکړې دي نو په وړاندې مسئله کې تیر شوي دي.چه د یوزر په قرضه باندې د دواړو ګواهانو د متفق کیدلو په وجه به یو زر روپۍ د مدعی علیه په ذمه باندې ثابت شي.او ګواهي به قبول وي.اود پنځه سوه په ادا کاوه باندې صرف د یو ګواه کیدلو په وجه به دا ګواهي نه قبلیږي.او قاضی به په مدعی علیه باندې د یو زر فیصله ورکوی.او په دې صورت کې به د مدعی علیه حق ضائع کیږي.یعنی مدعی علیه چې کومې پنځه سوه روپۍ اداکړې دي.هغه به ضائع شي.اودا سراسر په مدعی علیه باندې ظلم دې.او په دې ظلم کې هغه ګواه هم د مدعی سره شریك دې.کوم ته چې دا معلومه ده.چه مدعی د مدعی علیه نه پنځه سوه روپۍ وصول کړې دي.خو ددې باوجود نې د یو زر روپو پور ګواهي ورکړله.

خوکله چې مدعی د پنځه سوه روپو وصولولو اقرار اوکړو.نو هغه ګواه چاته چې ددې د وصولولو علم دې.د یو زر ګواهي ور کاوه سره به په ظلم باندې اعانت (او مدد) کونکې نه وي.ځکه چې په دې صورت کې به د مدعی د اقرار کاوه په وجه قاضی په مدعی علیه باندې د یو زر فیصله نه ورکوی.بلکه صرف د پنځه سوه روپو فیصله به ورکوی.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: رَجُلَانِ شَهِدَا عَلَى رَجُلٍ بِ پور أَلْفِ دِرْهَمٍ او په جامع صغیر کې فرمائي.چه دوو سړو په یو سړي باندې د یو زر د پور ګواهي ورکړله. فَشَهِدَ أَحَدُهُمَا أَنَّهُ قَدْ قَضَاهَا، فَالشَّهَادَةُ جَائِزَةٌ بیا په دواړه کې یو (ګواه) اووئیل.چه مدعی علیه دا قرضه اداکړې ده. عَلَى الْ پور [1] لِاتِّفَاقِهِمَا عَلَيْهِ نو په پور باندې ګواهي جائز ده. وَتَفَرَّدَ أَحَدُهُمَا بِالْقَضَاءِ عَلَى مَا بَيَّنَّا ځکه چې دواړه ګواه په پور باندې متفق دي.اود ادا کاوه په ګواهۍ کې یو متفرد دې.لکه چې موږ بیان کړي دي.

حل اللغة: رجل -سړې-قضا-ادا کړې دي-لاتفاق-موافقت-تفرد-ځانه والې

تشریح:- علامه مرغینانی ﷫ فرمائي.چه دا مسئله په جامع صغیر کې داسې ده.چه دوې (دوه) سړو د یو سړي خلاف د یو زر روپو د پور ګواهي ورکړله.مثلاً دائې اووئیل.چه د خالد په حامد باندې یو زر روپۍ پور دي.بیا په دواړو کې یو اووئیل.چه مدعی علیه یعنی حامد دا قرضه اداکړې ده.نودا قرضه به په مدعی علیه باندې ثابت وي.ځکه چې دواړه ګواهان د مدعی علیه په ذمه قرضه کیدلو باندې متفق دي. اود پور ادا کاوه په ګواهۍ کې چونکه فقط یو ګواه دې.اود یو ګواه په ګواهۍ سره د پور اداکول نه ثابتیږي.نو قرضه اداکول به نه ثابتیږي.

د جامع صغیر او قدوری په مسئله کې دا توپیر دې.چه د جامع صغیر په مسئله کې یو ګواه پوره قرضه یعنی د یو زر اداکولو ګواهي ورکړې ده.اود قدوری په مسئله کې د بعض دین یعنی د پنځه سوه روپو ادا کاوه ګواهي ورکړې ده.

وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ عَنْ أَصْحَابِنَا او طحاوی ﷫ زموږ د اصحابو نه روایت کړې دې. أَنَّهُ لَا تُقْبَلُ، وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ چې دا ګواهي به نه قبلیږي.اوهم دا د امام زفر ﷫ قول دې. لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ أَكْذَبَ شَاهِدَ الْقَضَاءِ ځکه چې مدعی د ادا کاوه ګواه دروغجن ګرځولې دي.

حل اللغة: ① اکذب -زیات دروغژن-② القضاء-ادا کول-③ یمنع-منع کوی-④ اکذاب-دروغژن کول

تشریح:- علامه مرغینانی ﷫ فرمایي چې امام طحاوی ﷫ د احناف عالمانو نه دا روایت کړې دې.چه په ذکرشوې

[1] ) القول الراجح هوهذا ظاهر الرواية من جواز الشهادة كذا في الهندية (٣\٤١٣) بدائع الصنائع (٦\٢٧٩) نقلاً عن القول الراجح (١٢\١٣٨)-

مسئله کې به په قرضه باندې هم ګواهي قبلولې شي. يعنې ددوی په ګواهۍ سره به د مدعی علیه په ذمه يو زر روپۍ نه ثابتيږي. هم دا قول د حضرت امام زفر رحمه الله دی.

ددې دليل دادې چه مدعی هرکله د يو زر روپو دعوه اوکړله. نو ګويا ده هغه ګواه دروغجن اوګرځولو. كوم چې د پنځه سوه روپو وصولولو هم شهادت ورکوی. ځکه چې ددې ګواه مطابق د مدعی علیه په ذمه پنځه سوه روپۍ دی. اود مدعی د دعوې مطابق يو زر روپۍ دی. نو ګويا مدعی ددې ګواه تکذيب اوکړو. او تکذيب او دروغجن کول فاسق ګرځول دی. ګويا مدعی دغه ګواه فاسق ګرځولې دې. اود فاسق ګواهي نه قبليږي. نو ددې ګواه ګواهي به دده د فسق په وجه نه قبليږي. اود دوهم ګواه ګواهي به د هغه د خانله والي په وجه قبول نه وی. نو ثابته شوه چه د پور ثابتولو لپاره هم د هغوی ګواهي قبول نه ده.

قُلْنَا: هَذَا إِكْذَابٌ فِي غَيْرِ الْمَشْهُودِ بِهِ الْأَوَّلِ وَهُوَ الْ پور مونږ وايو. چه دروغجن کول د اول مشهود به نه په علاوه کې دی. او مشهود به اول پور دې وَمِثْلُهُ لَا يَمْنَعُ الْقَبُولَ او داسې دروغجن کول د شهادت قبلولو لپاره مانع نه دی.

تشريح:- خو زمونږ د اړخه ددې خواب دادې. چه مدعی مشهود به اول يعنې په يوزر پور کې دا ګواه دروغجن نه دې ګرځولې. يعنې هغه چې د يو زر روپو د پور کومه ګواهي ورکړې ده. مدعی په دې ګواهۍ کې هغه دروغجن نه دې ګرځولې. بلکه مشهود به ثانی يعنې د پنځه سوه روپو اداکولو په ګواهۍ کې نې هغه دروغجن ګرځولې دې. او داسې دروغجن کول د شهادت د قبوليت لپاره مانع نه دی. لکه مثلاً دوی (دوه) ګواهانو ګواهي ورکړله. چه د خالد باندې يو زر روپۍ پور دی. بيا دې دوارو ګواهانو ګواهي ورکړله. چه په حامد باندې د عارف يو زر روپۍ پور دی. په دې باندې حامد ددې ګواهانو تکذيب اوکړو. نو حامد کوم چې اولاً مشهود له دې. د هغه لپاره به قاضی د يو زر فيصله ورکوی. اګرچه حامد د ځان خلاف د يو زر په ګواهۍ کې د هغه تکذيب او تفسيق کړې دې. ځکه چې د حامد د اړخه دا تفسيق (ګواهان فاسق ګرځول) اضطراری (مجبوری) شی دې. حالانکه ګواهي هغه تفسيق ردکوی. کوم چې اختياری وی. حاصل دادې. چه مدعی نه به د خپلو ګواهانو تکذيب کول يقيناً چې تفسيق وی. ځکه چې د مدعی د اړخه دا خبره اختياری شی دې. اود مدعی علیه د مدعی د ګواهانو تکذيب کول به تفسيق نه وی. ځکه چې مدعی علیه د خپل ځان نه د مدعی حق لرې کاوه لپاره اړتيا منده او مضطر دې. اود اړتيا منده او مضطر تکذيب تفسيق نه وی.

### په مکان کښې د ګواهانو د اختلاف حکم

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ أَنَّهُ قَتَلَ زَيْدًا يَوْمَ النَّحْرِ بِمَكَّةَ فرمائی. اوکله چې دوې (دوه) ګواهانو ګواهي ورکړله. چه ده زيد په يوم النحر کې په مکه کې قتل کړې دې. وَشَهِدَ آخَرَانِ أَنَّهُ قَتَلَهُ يَوْمَ النَّحْرِ بِالْكُوفَةِ او نورو دوې (دوه) ګواهانو ګواهي ورکړله چه هغه زيد په يوم النحر کې په کوفه کې قتل کړې دې. وَاجْتَمَعُوا عِنْدَ الْحَاكِمِ لَمْ يَقْبَلِ الشَّهَادَتَيْنِ اود دوارو ګواهانو دواړه فريق د قاضی په عدالت کې جمع شو. نو دواړه شهادتونه به قبول نه وی.

حل اللغة: ① يوم -ورځ-② النحر-قربانی-③ قتل-قتل کړې دې-④ اجتمعوا-جمع شول

تشريح:- مخکې بيان شوی دی چه د شاهدينو په مکان او د حادثې په ځاني کې اختلاف د شهادت د قبوليت لپاره مانع دې. هم د هغې په مثال کې دا مسئله په خدمت کې وړاندې کولې شی. که دوې (دوه) ګواهانو دا شهادت ورکړو. چه بکر زيد په لسم د ذی الحجه په مکه مکرمه کې قتل کړې دې. بيا هم دغه وخت د قاضی دحکم صادر کاوه نه وړاندې نورو دوې (دوه) ګواهانو ګواهي ورکړله. چه بکر زيد په لسم ذی الحجه کې په کوفه کې قتل کړې دې. نو دواړه شهادتونه به نه قبليږي.

لِأَنَّ إِحْدَاهُمَا كَاذِبَةٌ بِيَقِينٍ وَلَيْسَتْ إِحْدَاهُمَا بِأَوْلَى مِنَ الْأُخْرَى دليل دا دې چې په دې دواړو [illegible] يقينو کې يو يقيني طور باندې دروغجن دې. او په دوی کې يو د بل نه اولی (او غوره) نه دې.

تشريح:- دليل دادې چه يو فعل يعنې د يو سړی قتل په دوې (دوه) ځايونو کې چونکه [illegible] په دې وجه دې



دوارو شهادتونو کې به يو شهادت يقيني طور باندې دروغ وی. اود مرجع نه کيدلو په وجه به يو ته ترجيح هم حاصل نه وی. نو هرکله چې دواړه شهادتونه د برابر [illegible] جې دی. او يو ته په بل باندې ترجيح هم حاصل نه ده. نو د تعارض په وجه به دواړه ردکولې شي.

فَإِنْ سَبَقَتْ إِحْدَاهُمَا وَقَضَى بِهَا ثُمَّ حَضَرَتِ الْأُخْرَى لَمْ تُقْبَلْ نو که په دوی کې يو فريق سبقت اوکړو. او قاضی (دوباره من الاصل په دې باندې فيصله ورکړله. بيا دوهم فريق (د قاضی په مجلس کې) حاضر شو. نودا به نشی قبلولې. لِأَنَّ الْأُولَى تَرَجَّحَتْ بِاتِّصَالِ الْقَضَاءِ بِهَا فَلَا تُنْتَقَضُ بِالثَّانِيَةِ ځکه چې د ړومبی فريق ګواهي راجح شوې ده. د قاضی د حکم متصل کيدلو په وجه. نودا به په دويمه ګواهۍ سره نه ماتيږی.

حل اللغة: ① سبقت -وړاندې والې-② ترجحت-ترجيح بيا مونده-③ الاتصال-يوځاني کيدل-④ تنتقض-ماتيږی

تشريح:- البته که دواړو ګواهانو مخکې ګواهي ورکړله. او قاضی د هغې مطابق فيصله ورکړله. بيا نورو دوې (دوه) ګواهانو شهادت ورکړو. نودا دوهم شهادت به قبول نه وی. ځکه چې ړومبی شهادت سره د قاضی حکم متصل شوې دې. ځکه به ړومبې شهادت راجح وی. او دوهم شهادت د قاضی د قضاء سره د نه متصل کيدلو په وجه مرجوح دې. اود مرجوح په وجه راجح نشی ماتولې. او نشی پريخودلې. نو ړومبې شهادت به د راجح کيدلو په وجه قبلولې شی. او دوهم شهادت به د مرجوح کيدلو په وجه ردکولې شی.

### په کيف کښې د ګواهانو د اختلاف حکم

وَإِذَا شَهِدَا عَلَى رَجُلٍ أَنَّهُ سَرَقَ بَقَرَةً وَاخْتَلَفَا فِي لَوْنِهَا قُطِعَ که دوې (دوه) سړو د يو سړی خلاف دا ګواهي ورکړله. چه ده غوا غلا (پټه) کړې ده. او دواړو د هغې په رنګ کې اختلاف اوکړو. نود غل لاس به کټ کولې شی. وَإِنْ قَالَ أَحَدُهُمَا بَقَرَةً وَقَالَ الْآخَرُ ثَوْرًا لَمْ يُقْطَعْ او که په دواړو کې يو کس اووئيل. چه غوا وه. او دوهم اووئيل. چه غوئې وو. نود هغه لاس به نشی کټ کولې. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ دا حکم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې.

حل اللغة: ① سرق -غلا کړې ده-② بقرة-غوا-③ لون-رنګ-④ ثور-غوی

تشريح:- شاهدين راغلل. اود مشهود به په کيف کې نې اختلاف اوکړو. نودا اختلاف هم د شهادت د قبوليت لپاره مانع دې. ددې مثال دا مسئله ده. چه يو سړی په بل سړی باندې د غوا غلا کاوه دعوه اوکړله. او ددې غوا رنګ نې بيان نکړو. او بينه نې پيش کړل. خو په دواړه ګواهانوکې يو د سور رنګ غوا غلا کاوه باندې شهادت ورکړو. او دوهم د تور رنګ غوا په غلا کاوه باندې شهادت ورکړو. ياد ګواهانو دا اختلاف په تور يا سپين کې اوشو. نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دا شهادت قبول وی. اود غل لاس به کټ کولې شی.

وَقَالَا: لَا يُقْطَعُ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيعًا [1] او صاحبين رحمهما الله فرمائی. چه په دواړه صورتونوکې به (لاس) نشی کټ کولې.

تشريح:- په زيربحث مسئله کې صاحبين او آئمه ثلاثه (امام مالك، امام شافعی، او امام احمد رحمهم الله) فرمائی. چه دا شهادت به نه قبليږی. اود غل لاس به نشی کټ کولې. اوکه مسروق منه (مالك) د مسروقه (غلا کړې شوې) غوا رنګ متعين کړو. مثلاً دائې اووئيل. چه هغه غوا سور رنګ کې وه. بيا په شاهدينوکې يو کس په سور رنګ باندې ګواهي ورکړله. او دوهم په تور رنګ باندې ګواهي ورکړله. نودا ګواهي به بالاجماع قبول نه وی. ځکه چې په دې صورت کې مدعی د خپل يو ګواه تکذيب کړې دې. نود هغه ګواهي به قبول نه وی. او دوهم ګواه چونکه يواځې پاتې شو. ځکه به د هغه ګواهي هم قبول نه وی. بهرحال که مسروق منه رنګ متعين نکړو. او ګواهانو په رنګ متعين کاوه کې اختلاف اوکړو. نود امام صاحب رحمه الله په نيز به دا ګواهي قبول وی. د دواړه ګواهانو بيان کړې شوی

---

[1] ) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۶/۵۰۹) والعناية (۶/۵۰۹) وردالمحتار(۴/۴۳۶) نقلاً عن القول الراجح (۲/۱۳۹)_

دواړه رنګونه که پخپل منځ کي مشابه وي،لکه تور او سور.او که مشابه نه وي،لکه تور او سپين.اود صاحبينو ﷫ او آئمه ثلاثه په نيز به دا ګواهي قبول نه وي.اوکه يو ګواه د غوا د غلا کاوه ګواهي ورکړله.او يو د غوائي د غلا کاوه ګواهي ورکړله.نو دا ګواهي به په اتفاق د احنافو ﷫ نه قبليږي.اود غل لاس به نشي کټ کولي.ائمه ثلاثه (امام مالك، امام شافعي،او امام احمد ﷫) هم ددي قائل دي.

**وَقِيلَ الِاخْتِلَافُ فِي لَوْنَيْنِ يَتَشَابَهَانِ كَالسَّوَادِ وَالْحُمْرَةِ لَا فِي السَّوَادِ وَالْبَيَاضِ**،او وئيلی شوی دي. چې اختلاف په داسي دوې (دوه) رنګونو کي دې.کوم چې خپلوکي مشابه وي.لکه تور او سور رنګ. دا نه چې په توراوسپين کي. **وَقِيلَ هُوَ فِي جَمِيعِ الْأَلْوَانِ** او وئيلی شوی دي.چه دا اختلاف په ټولو رنګونوکي دې.

حل اللغة: ① لونين -تثنيه د لون،رنګ-② السواد-تور-③ الحمرة-سور-④ البياض-سپين

تشريح:- بعضي مشائخ فرمائي.چه د امام صاحب او صاحبينو ﷫ اختلاف په داسي دوې (دوه) رنګونوکي دې.کوم چې خپل منځ کي مشابه وې.لکه تور او سور رنګ.يعني که يو ګواه ګواهي ورکړله.چه د مسروقه غوا رنګ تور دې.او دوهم اووئيل.چه سور دې.نود امام صاحب﷫ په نيز به دا ګواهي قبول وي.اود غل لاس به کټ کولي شي.اود صاحبينو ﷫ په نيز به دا ګواهي قبول نه وي.او د غل لاس به نشي کټ کولي.اوکه ګواهانو په داسي دوې (دوه) رنګونوکي اختلاف اوکړو.کوم چې خپل منځ کي مشابه نه وي.مثلاً يو کس د تور رنګ ګواهي ورکړله.او يوکس د سپين رنګ ګواهي ورکړله.نودا ګواهي به د امام صاحب او صاحبينو ﷫ دواړو په نيز قبول نه وي.

او بعض وائي.چه د امام صاحب او صاحبينو ﷫ اختلاف په ټولو رنګونوکي دې.يعني د امام صاحب﷫ په نيز مطلقاً په دوې (دوه) رنګونوکي داختلاف کاوه په صورت کي ګواهي قبلولي شي.دواړه رنګونه که خپلوکي مشابه وي.او که مشابه نه وي.اود صاحبينو ﷫ په نيز به په دواړه صورتونوکي ګواهي نه قبليږي.

**لَهُمَا أَنَّ السَّرِقَةَ فِي السَّوْدَاءِ غَيْرُهَا فِي الْبَيْضَاءِ** صاحبين ﷫ فرمائي. چې د تورې غوا غلاکول (پټول) د سپينې غوا د غلا نه غير دي. **فَلَمْ يَتِمَّ عَلَى كُلِّ فِعْلٍ نِصَابُ الشَّهَادَةِ** نو په هر فعل باند د شهادت نصاب پوره نشو.

حل اللغة: ① السرقة -غلا-② السوداء-توره-③ البيضاء-سپينه-④ يتم-پوره کيږي

تشريح:- د صاحبينو ﷫ دليل دادې.چه د تورې غوا غلا بل شان ده.اود سپينې غوا غلا بل شان ده.يعني هريو ګواه د يو غوا په غلا باندې ګواهي ورکړې ده.نود يوې غوا په غلا باندې هم نصاب شهادت (دوې (دوه) ګواه کيدل) پوره نشو.اوهرکله چې د شهادت نصاب اونه موندې شو.نودا شهادت به قبول هم نه وي.

**وَصَارَ كَالْغَصْبِ بَلْ أَوْلَى، لِأَنَّ أَمْرَ الْحَدِّ أَهَمُّ وَصَارَ كَالذُّكُورَةِ وَالْأُنُوثَةِ** ودا د غصب پشان شو.بلکه په درجه اولی،ځکه چې د حد لګولو معامله زيات اهم ده.اودا اختلاف د نر او ماده د اختلاف پشان شو.

حل اللغة: ① اهم -زيات ضروری دي-② الذکورة-نارينه توب-③ الانوثة-زنانه توب-④ صار-اوګرځيدل

تشريح:- اودا د غصب پشان شو.لکه مثلاً يو ګواه ګواهي ورکړله.چه غاصب سپين رنګ غوا غصب کړې ده.او بل اووئيل.چه تور رنګ ئې غصب کړې ده.نو په دې ګواهئ سره دا غصب نه ثابتيږي.دغه ډول د اختلاف په صورت کي غلا هم نه ثابتيږي. بلکه غلا په درجه اولی ثابتيدل پکار نه ده.ځکه چې د حد لګولومعامله زياته سخته ده.ځکه چې غصب خو په شهادت د نساء مع الرجال سره هم ثابتيږي.او په شهادت علی الشهادت سره هم.او حد په دې دواړو سره نه ثابتيږي.نوهرکله چې د ګواهانو د مغصوب شئ په رنګ کي د اختلاف کاوه په صورت کي ګواهي نه قبليږي.نو په داسي قسمه اختلاف سره به حد په درجه اولی نه ثابتيږي.اودا داسې شوه.لکه څنګه چې د نر او ماده اختلاف دې.يعني لکه څنګه چې په نر او ماده کي اختلاف کاوه سره ددوی ګواهي نه قبليږي.دغه ډول په رنګ کي د اختلاف کاوه په صورت کي به هم ګواهي نه قبليږي.

**وَلَهُ أَنَّ التَّوْفِيقَ مُمْكِنٌ** اود امام صاحب﷫ دليل دادې.چه توفيق ممکن دې. **لِأَنَّ التَّحَمُّلَ فِي اللَّيَالِي مِنْ بَعِيدٍ وَاللَّوْنَانِ يَتَشَابَهَانِ** ځکه چې په شپو ځاغه (کي دداسې ګواهئ اوچتول د لرې نه واقع کيږي.او دواړه رنګونه به يا



مشابه وي. **أَوْ يَجْتَمِعَانِ فِي وَاحِدٍ فَيَكُونُ السَّوَادُ مِنْ جَانِبٍ وَهَذَا يُبْصِرُهُ وَالْبَيَاضُ مِنْ جَانِبٍ آخَرَ وَهَذَا الْآخَرُ يُشَاهِدُهُ** يا به په يو کي جمع وي.او توروالې يو اړخ ته وي.اودې هغه اوګوري.او سپينو والې بل اړخ ته وي.اودا (دوهم ګواه) هغه اوګوري.

حل اللغة: ① التوفيق -موافقت-② التحمل-پورته کول-③ الليالي -جمع د ليل،شپه-④ جانب-طرف

تشريح:- د حضرت امام ابوحنيفه﷫ دليل دادې.چه د رنګ په سلسله کي چې ګواهانو کوم اختلاف کړې دې.په هغې کي تطبيق او توفيق ورکول ممکن دی.ځکه چې غلاګانې زيات تر په شپه کي کيږي.او کتونکې د لرې نه ګوري.ځکه که کتونکې نژدې موجود وي.نو غلا به غلا هم اونکړې شي.نوهرکله چې په شپه کي د ګواهئ اوچتول يعني د کتونکی کتل د لرې نه واقع کيږي.او دواړه رنګونه به يا خو پخپل منځ کي مشابه وي.لکه تور او سور رنګ.او يا به دواړه رنګونه خپل منځ کي مشابه نه وي.لکه تور او سپين رنګ.خو دواړه رنګونه به په يو ځاروی کي جمع وي.په دې طريقه چې د ځارو يو اړخ به تور وي.او دوهم اړخ به سپين وي.نو په ړومبی صورت کي د لرې نه په کتلوکي چونکه اشتباه کيدای شي.په دې وجه د ګواهانو په بيان څه قدرې اختلاف اوشو.نودا اختلاف به نظر انداز کولي شي.( يعني دې اختلاف به توجه نشي کيدلې) اود هغوی ګواهي به قبلولي شي.او په دوهم صورت کي کله چې په يو اړخ کي سپينوالې او په دوهم اړخ کي توروالې دې.نو ممکن ده.چه يو ګواه يو اړخ کتلې وي.او دوهم ګواه دوهم اړخ کتلې وي.او هريو د خپلو کتلو موافق ګواهي ورکړې وي.نو په دې صورت کي به هم ګواهي قبول وي.ددې په خلاف غصب دې.چه غصب په ورځ کي کيږي.اود نژدې نه کيږي.نود ګواهانو کتل به هم په ورځ کي وي.اود نژدې څخه به وي.

**بِخِلَافِ الْغَصْبِ لِأَنَّ التَّحَمُّلَ فِيهِ بِالنَّهَارِ عَلَى قُرْبٍ مِنْهُ**،په خلاف د غصب،ځکه چې په دې کي د شهادت اوچتول په ورځ کي د نژدې نه کيږي. **وَالذُّكُورَةُ وَالْأُنُوثَةُ لَا يَجْتَمِعَانِ فِي وَاحِدَةٍ**،او نر اوماده په يو ځاروی کي نه جمع کيږي. **وَكَذَا الْوُقُوفُ عَلَى ذَلِكَ بِالْقُرْبِ مِنْهُ فَلَا يَشْتَبِهُ** او دغه ډول ځاروی ته په نژدې کيدلو سره په دې باندې خبريدلې شی.نو هيڅ اشتباه به نه کيږي.

حل اللغة: ① النهار-ورځ-② قرب-نژدې -③ يشتبه-مشتبه کيږي-④ يجتمع-جمع کيږي

تشريح:- اوهرکله چې دا خبره ده.نو په غصب کي به د ګواهانو اختلاف مقبول نه وي.او نر اوماده چونکه په يوځاروی کي نه جمع کيږي.او ځاروی ته په نژدې کيدلو سره په دې باندې خبريدل هم مکن دی.ځکه به په دې کي اشتباه هم نه وي.اوهرکله چې اشتباه نشته.نود توفيق ور کاوه هم هيڅ اړتيا نشته.اوهرکله چې د توفيق اړتيا نشته.نو په دې صورت کي به هم شهادت قبول نه وي.

### د قيمت په کموالی، زياتوالی کښي د ګواهانو د اختلاف حکم

**قَالَ وَمَنْ شَهِدَ لِرَجُلٍ أَنَّهُ اشْتَرَى عَبْدًا مِنْ فُلَانٍ بِأَلْفٍ** وکه يوکس د يوسړي لپاره ګواهي ورکړله.چه ده يو غلام د فلانی د يو زر په عوض اخستې دې. **وَشَهِدَ آخَرُ أَنَّهُ اشْتَرَاهُ بِأَلْفٍ وَخَمْسِمِائَةٍ فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ** و دوهم ګواهي ورکړله. چې ده د يونيم زر په عوض اخستې دې.نودا شهادت باطل دې.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړی مثلاً خالد دعوه اوکړله.چه حامد خپل غلام د يوزر،يا د يونيم زر په عوض زما په لاس خرڅ کړې دې.او بائع يعنی حامد ددې انکار اوکړو.نو مدعی د بيع يعنی مشتری (خالد) بينه پيش کړل.خويو ګواه د يو زر په عوض د اخستلو ګواهي ورکړله.او يو د يونيم زر په عوض د اخستلو ګواهي ورکړله.نودا ګواهي به باطل او ناقابل قبول وي.

**لِأَنَّ الْمَقْصُودَ إِثْبَاتُ السَّبَبِ وَهُوَ الْعَقْدُ وَيَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الثَّمَنِ** دليل دا دې چې دلته کي سبب يعنی عقدبيع ثابتول مقصود دی.او سبب په اختلاف د ثمن سره مختلف کيږي. **فَاخْتَلَفَ الْمَشْهُودُ بِهِ** نود کوم شئ ګواهي چې ورکړې شوې ده.هغه مختلف شوه. **وَلَمْ يَتِمَّ الْعَدَدُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ** او په هر عقد باندې عدد پوره نشو.

حل اللغة: ① اثبات -ثابتول-② يختلف-مختلف كيږى-③ الثمن -پيسي-④ العدد-شمير

تشريح:- دليل دا دي چي د بيع دعوه كاوه سره دمشترى مقصود سبب يعنى عقد بيع ثابتول دى.او عقد بيع د ثمن په اختلاف سره مختلف كيږى.ځكه چي د يو زر په عوض اخستل جلا دى.اود يونيم زر په عوض اخستل جلا دى.ګويا يو ګواه په يو عقد باندي ګواهي وركړله.او دوهم په دوهم عقد باندي ګواهي وركړله.او هركله چي داسي ده.نو په دواړه عقدونوكي په يو عقد هم نصاب د شهادت پوره نشو.او هركله چي نصاب شهادت ( دوي (دوه) ګواهان) پوره نشو.نو په يو عقد به هم ددوى ګواهي قبول نه وى.بلكه د دواړو شهادت به باطل او لغو وى.

وَلِأَنَّ الْمُدَّعِيَ يُكَذِّبُ أَحَدَ شَاهِدَيْهِ او ځكه چي مدعى پخپلو دوي (دوه) ګواهانو كي يو دروغجن كوى.

حل اللغة: ① يكذب -دروغژن كوى-② البائع -خرڅونكي-③ اقل-كم -④ اكثر-زيات

تشريح:- دوهم دليل دادي چه مدعى يعنى مشترى پخپلو دواړه ګواهانوكي يو پخپله دروغجن ګرځوى.يعنى كه مشترى د يو زر په عوض د اخستلو دعوه اوكړله.نود يو نيم زر په عوض د اخستلو ګواهي وركونكي به د مدعى په نيز كاذب (او دروغجن) وى.اوكه مشترى د يو نيم زر په عوض د اخستلو دعوه اوكړله.نود يو زر په عوض د اخستلو ګواهي وركونكي به د مدعى په نيز كاذب وى.بهرحال كله چي مدعى د يو زر تكذيب كوى.نودهغه ګواهي به قبول نه وى.او دوهم ګواه چونكه يواځي پاتي شوي دي.په دي وجه به د هغه ګواهي هم نه قبليږى.

وَكَذَلِكَ إِذَا كَانَ الْمُدَّعِي هُوَ الْبَائِعَ اودغه ډول كه بائع پخپله مدعى وى.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه شهادت به هغه وخت هم باطل وى.كله چي د بيع مدعى بائع وى.او په ګواهانوكي اختلاف وى.مثلاً بائع يعنى حامد دعوه اوكړله.چه ما يو غلام د يوزر يا د يونيم زر په عوض خالد باندي خرڅ كړي دي.او مشترى يعنى خالد ددي منكر دي.نو مدعى يعنى بائع بينه پيش كړل.خو په دوى كي يو ګواه د يو زر په عوض د خرڅولو ګواهي وركړله.او يو د يو نيم زر په عوض د خرڅولو ګواهي وركړله.نود تير شوو دليلونو په وجه به دا ګواهي هم باطل او ناقابل قبول وى.

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَدَّعِيَ الْمُدَّعِي أَقَلَّ الْمَالَيْنِ أَوْ أَكْثَرَهُمَا لِمَا بَيَّنَّا او په دي كي هيڅ توپير نشته.چه مدعى په دواړه مالونوكي د كم دعوه اوكړى.يا د زيات دعوه اوكړى.دليل هم هغه دي.كوم چي موږ بيان كړي دي.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه مدعى بائع وى.او كه مشترى وى.او هغه كه د اقل مال ( يوزر) دعوه كوى.اوكه د اكثر مال( يونيم زر) دعوه كوى.د مسئلي په حكم كي هيڅ توپير نشته.لكه چي په دلائلو سره ددي تفصيل ذكركړي شو.

## په بدل كتابت كښي د ګواهانو د ګواهئ د اختلاف حكم

وَكَذَلِكَ الْكِتَابَةُ وهم دا حكم د كتابت دي. لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الْعَقْدُ إِنْ كَانَ الْمُدَّعِي هُوَ الْعَبْدَ فَظَاهِرٌ، وَكَذَا إِذَا كَانَ هُوَ الْمَوْلَى ځكه چي مقصود عقد دي.كه مدعى غلام وى.نو ښكاره ده.

تشريح:- د يو نوع اته مسئلي دى.په هغي كي ① يوه مسئله مخكي ذكركړي شوه.يعنى د عقدبيع په صورت كي ګواهانو په ثمن كي اختلاف كړي وى.② دويمه مسئله د عقد كتابت ده.كومه چي په دي ذير بحث عبارت كي ذكر ده.ددي صورت دادي.چه يو غلام په خپل مولا باندي د كتابت دعوه اوكړله.او مولا د عقد كتابت نه انكار اوكړو.بيا مدعى يعنى غلام بينه پيش كړل.خو په دوى كي يو ګواه ګواهي وركړله.چه بدل كتابت يو زر روپئ دي.اويو ګواهي وركړله.چه بدل كتابت يو زر پنځه سوه روپئ دي.نودا ګواهي به قبول نه وى.

لِأَنَّ الْعِتْقَ لَا يَثْبُتُ قَبْلَ الْأَدَاءِ فَكَانَ الْمَقْصُودُ إِثْبَاتَ السَّبَبِ ځكه چي آزادي د بدل كتابت ادا كاوه نه وړاندي نه ثابتيږى.نو مقصود به سبب ثابتول وى.

حل اللغة: ① العتق -ازادي-② الدم -وينه-③ المرأة-ښځه-④ ماسة-پيښ شوي



تشريح:- دليل دا دي چي دلته كي عقد كتابت ثابتول مقصود دى.او عقد كتابت د بيع پشان د بدل كتابت په مختلف كيدلو سره مختلف كيږى.نو هركله چي يو ګواه د يو زر روپو د بدل كتابت كيدلو ګواهي وركړله.او يو د يونيم زر روپو د بدل كتابت كيدلو ګواهي وركړله.اود يو زر روپو بدل كتابت سره عقد كتابت جلا دي.اود يونيم زر بدل كتابت سره عقد كتابت جلا دي.ګويا دوي (دوه) عقد كتابت شو.اوپه هيڅ يو عقد كتابت باندي نصاب شهادت اونه موندي شو.اوهركله چي په يو عقد كتابت باندي نصاب شهادت اونه موندي شو.بلكه په هريو باندي صرف يو ګواه دي.نودا شهادت به د نصاب نه پوره كيدلو په وجه نشى قبلولي.

دغه ډول كه مولا د عقد كتابت مدعى وى.او غلام منكر وى.او ګواهانو په يو زر او يونيم زر سره اختلاف اوكړو.نود هغوى شهادت به قبول نه وى.ځكه چي دا شهادت هم په حقيقت كي د عقد كتابت ثابتولو لپاره دي په دي طريقه چي د مولا مقصود د غلام آزادول دى.او آزادى د بدل كتابت ادا كاوه نه وړاندي نه ثابتيږى.اود بدل كتابت اداكول د عقدكتابت نه بغير نه متحقق كيږى.نو ثابته شوه.چه خاص بدل كتابت مقصود دي.اود شاهدينو د اختلاف په وجه چونكه عقد كتابت مختلف كيږى.په دي وجه په يو عقد كتابت باندي هم نصاب شهادت پوره نشو.او تركومه پوري چي نصاب شهادت پوره نشى.تر هغه وخته پوري چونكه شهادت نه قبليږى.ځكه به دا شهادت هم نه قبليږى.

وَكَذَا الْخُلْعُ وَالْإِعْتَاقُ عَلَى مَالٍ وَالصُّلْحُ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ وهم دا حكم د خلع، اعتاق على مال،اود صلح عن دم العمد دي. إِذَا كَانَ الْمُدَّعِي هُوَ الْمَرْأَةَ أَوِ الْعَبْدَ أَوِ الْقَاتِلَ كله چي مدعى ښځه، غلام،قاتل وى. لِأَنَّ الْمَقْصُودَ إِثْبَاتُ الْعَقْدِ وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَيْهِ ځكه چي مقصود عقد ثابتول دى.او ددي اړتيا هم دي.

تشريح:- د دغه اتو مسئلو نه دريمه څلورمه او پنځمه مسئله دا راروانې دى خو په دي كي به شهادت هله نه قبليږى چي مدعيان په كي ښځه ،غلام او د قاتل وى اوكه مدعيان ميړه يا مولى يا د مقتول ولى وى نو د هغي حكم به راروان متن كي راځى ③ دريمه مسئله د خلع ده.④ څلورمه د اعتاق على مال ده.⑤ پنځمه مسئله د صلح عن دم العمد ده.

③ د دريمي مسئلي تفصيل دادي.چه ښځي دعوه اوكړله.چه ما خپل ميړه سره خلع كړي ده.او ميړه ددي منكر دي.بيا د ښځي د اړخه دخلع په دعوه باندي پيش كونكو ګواهانوكي يو ګواهي وركړله.چه بدل خلع يو زر دي.او دوهم د يونيم زر ګواهي وركړله. نودا ګواهي به نشى قبلولي.ځكه چي، د ښځي مقصود عقد خلع ثابتول دى.اود ګواهانو په بدل خلع كي د اختلاف كاوه په وجه عقد خلع مختلف شو.او په يو عقد خلع باندي هم چونكه نصاب شهادت پوره نشو.ځكه به په دواړه ګواهانو كي د يو ګواهي هم نه قبليږى.

④ د څلورمي مسئلي تفصيل دادي.چه غلام پخپل مولا باندي د اعتاق على مال دعوه اوكړله.او مولا د دي منكر دي.بيا غلام پخپله دعوه باندي دوي (دوه) ګواهان پيش كړل.خو يو ګواهي وركړله.چه د اعتاق عوض يو زر دي.او دوهم ګواهي وركړله.چه د اعتاق عوض يونيم زر دى.نودا ګواهي به قبول نه وى.ځكه چي د غلام مقصود عقد اعتاق على مال ثابتول دى.اود ګواهانو په مقدار مال كي د اختلاف كاوه په وجه عقد اعتاق على مال مختلف شو.او په يو عقد اعتاق باندي هم چونكه نصاب د شهادت موجود نه دي.ځكه به د يوكس ګواهي هم نه قبليږى.

⑤ اود پنځمي مسئلي تفصيل دادي.چه قاتل د مقتول په اولياء باندي د صلح عن دم العمد دعوه اوكړله.اود مقتول اولياؤ ددي انكار اوكړو.بيا قاتل پخپله دعوه باندي دوي (دوه) ګواهان پيش كړل. خو يو ګواه ګواهي وركړله.چه بدل صلح يو زر دي.او دوهم ګواهي وركړله.چه بدل صلح يونيم زر دى.نود ګواهانو په اختلاف كاوه سره عقد صلح مختلف شوي ده.او په يوعقد باندي هم پوره نصاب شهادت موجود نه دي.نود نصاب شهادت نه پوره كيدلو په وجه به دا شهادت هم قبول نه وى.حاصل داچه په دريواړه مسئلوكي د مدعى مقصود عقد ثابتول دى.او ددي اړتيا هم دي.اود ګواهانو داختلاف په وجه عقد مختلف شوي دي.او په يو عقد باندي هم چونكه نصاب شهادت موجود نه دي.ځكه به دا شهادت مردود او غيرمقبول وى.

وان كانت الدعوى من جانب آخر فهو بمنزلة دعوى الدين فيما ذكرنا من الوجوه او كه دعوه د بل اړخه وي.نو په ذكر شوي صورتونو كي دا د پور د دعوه په مرتبه كي دي. لانه تثبت العفو والعتق والطلاق باعتراف صاحب الحق فبقي الدعوى في الدين خكه چي عفو، عتق، او طلاق د صاحب حق په اقرار سره ثابتيږي.نود پور دعوه پاته شوه.

حل اللغة: ① جانب -طرف-② الدين-قرض-③ العفو-معافي-④ اعتراف-اقرار

تشريح:- كه په زير بحث دي درې واړه مسئلو كي كه دعوه د دوهم (فريق) د اړخه وي.يعني خاوند، د مولا، اود مقتول د ولي د اړخه وي.مثلاً په دريمه مسئله كي ميړه دعوه اوكړله.چه ما په يو زر پنځه سوه روپئ باندي ښځه خلع كړې ده.او ښځه وائي.چه په يو زر باندي دې خلع كړې ده.يا په څلورمه مسئله كي مولا دعوه اوكړله.چه ما په يونيم زر باندي ته آزاد كړې ئې.او غلام وائي.چه په يو زر باندي دې آزاد كړې يم.يامثلاً په پنځمه مسئله كي اود مقتول ولي اووائي.چه ما تا سره په يونيم زر باندي صلح كړې ده.او قاتل وائي.چه په يوزر باندي دې صلح كړې ده.

نودا داسې ده.لكه چي دې حضراتو د پور دعوه كړې وي.خكه چي صاحب حق يعني په دريمه مسئله كي د ميړه په اقرار سره طلاق ثابت شو.په څلورمه مسئله كي د مولا د اقرار په وجه عتق ثابت شو. اوپه پنځمه مسئله كي د مقتول د اقرار كاوه په وجه عفو ثابت شوه. نوهركله چي دا شيان صرف په اقرار كاوه سره ثابت شول.نو ددې حضراتو د اړخه صرف د دين او پور دعوه پاته شوه.اوپه پور كي به هغه واړه صورتونه جاري كيږي.كوم چي د باب په پيل كي ذكر شوي دي.

مثلاً مدعي زوج ،مولا اود مقتول ولي كه د يو زر يا پنځه سوه دعوه اوكړله.اوگواهانو په يو زر او يوزر پنځه سوه سره اختلاف اوكړو.نو په يوزر به بالاتفاق گواهي قبلولې شي.

اوكه د دوې (دوه) زره دعوه ئې اوكړله.نود امام صاحب رحمه الله په نيز به داگواهي نه قبليږي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به په يو زر كي قبلولې شي.

اوكه د اقل مالين يعني د يوزر دعوه اوكړله.او گواهانو اختلاف اوكړو.نود تكذيب، توفيق اود سكوت صورتونو اعتبار به كولې شي.يعني كه دمدعي د زائد په اړه كي د خپل گواه تكذيب يا د زياتي په اړه كي سكوت اوكړو.نودا گواهي به ردكولې شي.او په دې سره به د مال هيڅ مقدار نه ثابتيږي.اوكه د مدعي په قول اود گواه په گواهئ كي توفيق وركول ممكن وي.نودا گواهي به قبلولې شي.كه ددې صورتونو تفصيل په ذهن كي نه وي.نو د باب په پيل كي ئې اوگورئ.

وفي الرهن ان كان المدعي هو الراهن اود رهن په صورت كي كه مدعي راهن وي. لايقبل نو شهادت به نه قبليږي. لانه لاحظ له في الرهن خكه چي په رهن كي د راهن هيڅ حق نشته. فعريت الشهادة عن الدعوى نو شهادت دعوه نه خالي شو.

حل اللغة: ① الرهن -گانړه-② حظ-حصه-③ عريت-خالي شو-④ يقبل-قبلولې شي

تشريح:- شپږمه مسئله د دين ده.كه راهن مدعي وي.يعني راهن دعوه اوكړله.چه د فلاني سره زما فلانې سامان رهن دې.او مرتهن د هغې منكر دې.بيا راهن گواه پيش كړل.نو يو گواه اووئيل.چه فلاني مرتهن سره د فلاني سامان د يو زر دين په عوض رهن ايخودلې شوې دې.او دوهم گواه اووئيل.چه د يونيم زر په عوض رهن ايخودلې شوې دې.نود راهن دا بينه به نشي قبلولې.خكه چي د دين ادا كاوه نه وړاندې د راهن په شئ مرهون كي هيڅ برخه نه وي.لكه كه د دين ادا كاوه نه وړاندې راهن شئ مرهونه واپس اخستل اوغواړي.نو هغه ته به داحق نه وي.او هركله چي د دين ادا كاوه نه وړاندې راهن ته د شئ مرهونه واپس اخستلو حق نشته.نود هغه دعوه به غيرمفيد شوه.اوهركله چي د هغه دعوه غيرمفيد ده.نو هغه به د نه كيدلو په درجه كي وي.گويا دعوه اونه موندې شوه.نود راهن د اړخه پيش كړې شوې شهادت د دعوې نه بغير پاتې شو.او وړاندې تير شوي دي.چه د دعوې نه بغير هيڅ يو شهادت نه قبليږي.نود راهن دارخه پيش كړې شوې دا شهادت



به هم نه قبليږي.

وان كان المرتهن فهو بمنزلة دعوى الدين اوكه مدعي مرتهن وي.نودا د دين دعوه په مرتبه كي دې.

تشريح:- اوكه مرتهن مدعي وي.يعني مرتهن دعوه اوكړله.چه د فلاني مرهون سامان په عوض په فلاني باندې زما دومره قدرې پور دې.او راهن ددې منكر دې.بيا مرتهن گواهان پيش كړل.او گواهانو اختلاف اوكړو.يود دين مقدار يوزر اوخودلو. دوهم يو نيم زربيان كړلو.نو اقل مالين يعني په يو زر به گواهي قبلولې شي.

ددې دليل دادې.چه مرتهن ته د شئ مرهونه واپس كولو.اود عقد رهن ماتولو هروخت اختيار دې.خكه به د مرتهن په حق كي عقد رهن غيرلازم وي.اوهركله چي عقد رهن د مرتهن په حق كي غيرلازم دې.نو عقد رهن به د عدم په درجه كي وي.اود مرتهن د اړخه به صرف ددين دعوه معتبر وي.گويا په راهن باندې مرتهن ددين دعوه كړې ده.اود دين په صورت كي د گواهانو د يو زر اود يونيم زر اختلاف سره په اقل يعني په يو زر باندې گواهي قبلولې شي.لكه څنگه چي وړاندې تير شو.نو دلته كي به هم په يو زر باندې گواهي قبلولې شي.اود مرتهن لپاره به د يوزر د فيصلې حكم وركولې شي.او رهن به د دين په ضمن كي د يو زر په عوض ثابت شي.

وفي الاجارة ان كان ذلك في اول المدة اود اجاره په صورت كي دا اختلاف كه د مودې په ابتداء كي وي. فهو نظير البيع نودا د بيع مثال دې.

حل اللغة: ① الاجارة -مزدوري -② المدة-وخت-③ نظير-مثال-④ البيع-خرڅول

تشريح:- اوومه مسئله د اجارې ده.خو ددې دوې (دوه) صورتونه دي.د آجر (اجرت باندې وركونكې) او مستاجر (په اجرت باندې د اخستونكې) په منځ كي د اجرت په مقدار كي به يا د اجاره په اوله موده كي اختلاف وي.يا به د اجارې موده تيريدلو نه روسته اختلاف وي.دا اختلاف كه په اوله موده كي وي.نودا به د بيع مثال وي.يعني لكه څنگه چي په بيع كي د گواهانو په اختلاف كاوه سره د هغوي شهادت نه قبليږي.دغه ډول په اجاره كي هم د شاهدينو د اختلاف په وجه دهغوي شهادت نه قبليږي.خكه چي په دې صورت كي عقد اجاره ثابتول مقصود دي.او عقد اجاره د اختلاف اجرت په وجه مختلف شوې دې.خكه چي يو گواه گواهي وركړله.چه مقدار د اجرت يوزر دي.او يو اووئيل.چه مقدار د اجرت يونيم زر دي.نو ددې اختلاف په وجه عقد اجاره يو پاتې نشو.بلكه دوې (دوه) شو.يود يوزر په عوض، دوهم د يونيم زر په عوض.او چونكه نصاب شهادت موجود نه دې.خكه به دا شهادت نه قبليږي.او اجاره به نه ثابتيږي.

وان كان بعد مضي المدة اوكه د مودې تيريدلو نه روسته وي. والمدعي هو الآجر او په اجاره باندې وركونكې مدعي دې. فهو دعوى الدين نودا د پور دعوه ده.

تشريح:- كه دا اختلاف د اجارې موده تيريدلو نه روسته اوشو.نو ددې هم دوې (دوه) صورتونه دي.مدعي به آجر (اجرت باندې وركونكې) وي.يا به مستاجر (اجرت باندې اخستونكې) وي.كه مدعي آجر دې.اوهغه د اكثر يعني د يونيم زر د اجرت دعوه اوكړله.او شاهدينو په يوزر او يونيم زر سره اختلاف كړې دې.نو اقل مالين يعني په يوزر باندې به شهادت قبلولې شي.اود آجر لپاره به د يوزر فيصله كولې شي.خكه هركله چي موده د اجارې تيره شوه.نو صرف د اجرت په مقدار كي جگړه پاتې شوه.اودا داسې شوه.لكه مثلاً يوكس په بل باندې د يونيم زر د دين دعوه كړې وي.خو په گواهانوكي يو د زر اويو د يونيم زر گواهي وركړله.نو په يوزر باندې به گواهي قبلولې شي.دغه ډول دلته كي هم چونكه د آجر د اړخه صرف د دين دعوه ده.خكه به په يو زر باندې گواهي قبلولې شي.اوكه مدعي مستاجر دې.او آجر منكر دې.نو هغه چي څومره قدرې اقرار كړې دې.هم دغه به اجرت گرځولې شي.اود شاهدينو اتفاق يا اختلاف به په دې باندې هيڅ اثر نه كوي.خكه كه مستاجر د اكثر يعني د يونيم زر اقرار كړې دې.نود آجر او مستاجر په منځ كي به هيڅ جگړه نه وي.اوكه د يو زر اقرار ئې كړې دې.نو آجر به د بينه په ذريعه هم د يو زر نه زيات نشي اخستلې.خكه چي د آجر د اړخه به د يونيم زر دعوه وي.او په دې به بينه پيش كوي.او په

ګواهانو کې به اختلاف وی.نو وړاندې تیر شو.چه په دې صورت کې په اقل یعنی په یوزر باندې به بینه قبلولې شی.نو دلته کې به هم هغه مقدار واجب وی.د کوم چې مستاجر اقرار کړې وی. که قلیل وی.اوکه کثیر وی.

## د مهر په مقدار کښې په ګواهانو کښې د اختلاف حکم

**قَالَ: فَأَمَّا النِّكَاحُ** او پاتې شوه نکاح، **فَإِنَّهُ يَجُوزُ بِأَلْفٍ اسْتِحْسَانًا** نو [1] (د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز) هغه به استحساناً د یو زر روپو په عوض جائز کیږي.

**تشریح:-** په اتو مسئلوکې اتمه مسئله د نکاح ده.ددې صورت دادې.چه ښځه مدعی ده.چه زما نکاح فلانی سړي سره په یونیم زر روپۍ باندې اوشوه.او میړه اووئیل.چه په یوزر روپۍ باندې نکاح اوشوه.بیا ښځې ګواهان پیش کړل.نو یو ګواه د یوزر روپو په عوض د نکاح ګواهي ورکړله.او یو اووئیل.چه مهر یونیم زر روپۍ مقرر کړې شوې وو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا نکاح په یوزر روپو باندې استحساناً جائز ګرځولې شي.

**وَقَالَا: هَذَا بَاطِلٌ فِي النِّكَاحِ أَيْضًا** او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دا ګواهی په نکاح کې هم باطل ده. **وَذَكَرَ فِي الْأَمَالِي قَوْلَ أَبِي يُوسُفَ مَعَ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ** او په امالی کې د امام ابویوسف رحمه الله قول د امام ابوحنیفه رحمه الله سره ذکر کړې شوې دې.

**تشریح:-** او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دا ګواهی په نکاح کې هم باطل ده.یعنی نه به شهادت قبلولې شی.اونه به د نکاح فیصله کولې شی.او په امالی کې د ابویوسف رحمه الله قول د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله سره ذکر شوې دې.یعنی استحساناً د ابویوسف رحمه الله په نیز هم نکاح جائز ده.

**لَهُمَا أَنَّ هَذَا اخْتِلَافٌ فِي الْعَقْدِ،** اود صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه دا اختلاف په عقد کې دې. **لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ السَّبَبُ فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ** خکه چې د دواړه طرفونو نه سبب مقصود دې.نود بیع مشابه شو.

**تشریح:-** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د ښځې میړه دواړو مقصود سبب یعنی عقد نکاح ثابتول دی.اود ګواهانو داختلاف په وجه عقد نکاح مختلف شو.په دې طریقه چې د یوزر روپو په عوض نکاح جلا ده.اود یونیم زر په عوض جلا ده.او په یوهم د شهادت نصاب موجود نه دې.نونه به د یوزر په عوض نکاح جائز وی.اونه به د یونیم زر په عوض جائز وی.او په عقد نکاح کې د ګواهانو اختلاف په عقد بیع کې د اختلاف مشابه شوې دې.یعنی لکه څنګه چې په عقد بیع کې د ګواهانو په یوزر او یونیم زر سره د اختلاف کاوه په وجه شهادت نه قبلیږي.او بیع نه صحیح کیږي.دغه ډول په عقد نکاح کې هم د ګواهانو داختلاف کاوه په وجه به نه شهادت قبول وی.اونه به عقد نکاح جائز وی.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ الْمَالَ فِي النِّكَاحِ تَابِعٌ،** اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه په نکاح کې مال تابع وی **وَالْأَصْلُ فِيهِ الْحِلُّ وَالِازْدِوَاجُ وَالْمِلْكُ وَلَا اخْتِلَافَ فِي مَا هُوَ الْأَصْلُ فَيَثْبُتُ،** خو په اصل کې حلت، ازدواج، او ملك بضع وی.اوکوم شی چې اصل دې په هغې کې هیڅ اختلاف نشته نو اصل به ثابت شی. **ثُمَّ إِذَا وَقَعَ الِاخْتِلَافُ فِي التَّبَعِ يُقْضَى بِالْأَقَلِّ لِاتِّفَاقِهِمَا عَلَيْهِ** بیا کله چې په تابع کې اختلاف شو.نود اقل مال فیصله به کولې شی.خکه چې دواړه ګواه په اقل مال باندې متفق دی.

**حل اللغة:** ① **الحل** -حرالوالي- ② **الازدواج**-واده کیدل\کول- ③ **يقضى** -فیصله به کولې شی- ④ **الاقل**-کم

**تشریح:-** د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله ① دلیل دادې.چه دګواهانو اختلاف دمهر په مقدار یعنی په مال کې دې.او

[1] القول الراجح هو هذا قول الإمام رحمه الله كذا في الشرنبلالية (٣٨٧\٢) والعناية (٥١٣\٦) والدر المختار (٤٣٥\٤) ملتقى البحر (٢٩٠\٣) والزيلعي (٢٣٤\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٤٠\٢)-



مال په نکاح کې تابع وی.هم دا وجه ده.چه دنکاح په وخت که دمهر ذکر بالکل اونکړې شو.بیا هم نکاح صحیح کیږي.بهرحال مال په نکاح کې تابع دې.او په تابع کې اختلاف کاوه سره په اصل (عقد نکاح) کې اختلاف کول نه لازمیږي.نوهرکله چې په تابع یعنی په مال کې اختلاف کاوه سره په اصل یعنی په عقد نکاح کې اختلاف کول نه لازمیږي.نو اصل یعنی عقد نکاح به ثابتیږي.او په عقد نکاح به ګواهی قبلولې شی.② دوهم دلیل دادې.چه په نکاح کې اصل، ملك بضع حلالیدل،د زوجیت ثابتیدل،اود بضع مالك کیدل دی.خکه چې نکاح هم ددې مقاصدو لپاره مشروع شوې ده.او پاتې شو مال، یعنی په میړه باندې د مهر لازمیدل.نو هغه د بضع شرافت ښکاره کاوه لپاره دی.خکه چې میړه په مفت کې د بضع مالك جوړولو سره د بضع شرافت ختمیږي.نو ثابته شوه.چه په نکاح کې مال اصل نه دې.بلکه تابع دې.او ګواهانو په اصل کې هیڅ اختلاف نه دې کړې.بلکه په تابع یعنی د مال په مقدار کې ئې اختلاف کړې دې.چه یودیوزر روپو ګواهی ورکړله.او بل د یونیم زر ګواهی ورکړله .نو په کوم کې چې هیڅ اختلاف نشته.یعنی عقد نکاح، هغه به خو ثابت شی.او په کوم کې چې اختلاف دې.یعنی تابع، په هغې کې به په اقل یعنی په یوزر باندې فیصله ورکولې شی.خکه چې په یو زر باندې دواړه ګواهان متفق دی.

**وَيَسْتَوِي دَعْوَى أَقَلِّ الْمَالَيْنِ أَوْ أَكْثَرِهِمَا** او دعوه که د اقل مالین وی.اوکه د اکثر مالین وی. **فِي الصَّحِيحِ** په صحیح قول کې دواړه برابر دی.

**حل اللغة:** ① **يستوى** -برابر ده- ② **المراة**-ښځه- ③ **الزوج**-خاوند- ④ **تقبل**-قبلولې شی

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه مدعی د کم مال دعوه کړې وی.اوکه د زیات دعوه ئې کړې وی.په صحیح قول کې دواړه برابر دی.یعنی په دواړه صورتونوکې به په کم مال باندې فیصله ورکولې شی.

**ثُمَّ قِيلَ: الِاخْتِلَافُ فِيمَا إِذَا كَانَتِ الْمَرْأَةُ هِيَ الْمُدَّعِيَةَ** بیا وئیلی شوی دی.چه اختلاف په دې صورت کې دې.کله چې ښځه مدعیه وی. **وَفِيمَا إِذَا كَانَ الْمُدَّعِي هُوَ الزَّوْجَ** او په دې صورت کې کله چې مدعی میړه وی. **إِجْمَاعٌ عَلَى أَنَّهُ لَا تُقْبَلُ،** په دې اجماع ده.چه شهادت به قبول نه وی. **لِأَنَّ مَقْصُودَهَا قَدْ يَكُونُ الْمَالَ وَمَقْصُودَهُ لَيْسَ إِلَّا الْعَقْدَ** خکه چې د ښځې مقصود کله مال وی.اود میړه مقصود صرف عقد وی.

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د بعض مشائخو قول دې.چه دامام ابوحنیفه اود صاحبینو رحمهم الله اختلاف په هغه صورت کې دې.کله چې د ښځې مقصود مال یعنی مهر وی.خود میړه مقصود صرف عقد نکاح وی.نوکله چې میړه مدعی وی.نود هغه مقصود: به صرف عقد نکاح ثابتول وی.اوپه ګواهانوکې چونکه اختلاف دې.خکه به عقد نکاح نه ثابتیږي.او شهادت به نه قبلیږي.اوکله چې ښځه مدعیه ده.نو په دې صورت کې چونکه مال مقصود دې.خکه به د ګواهانو اختلاف هم دمال په مقدار کې وی.په اصل نکاح کې به نه وی.اوهرکله چې په اصل نکاح کې اختلاف نشته.نو اصل نکاح به ثابتیږي.اود مال په مقدار کې چونکه اختلاف دې.خکه به په اقل مقدار باندې فیصله ورکولې شی.

**وَقِيلَ الِاخْتِلَافُ فِي الْفَصْلَيْنِ، وَهَذَا أَصَحُّ وَالْوَجْهُ مَا ذَكَرْنَا، وَاللَّهُ أَعْلَمُ** او وئیلی شوی دی.چه اختلاف په دواړه صورتونوکې دې.او هم دا اصح دې.او ددې وجه هم هغه ده.کومه چې موږ وړاندې بیان کړې ده.

**تشریح:-** بعض مشائخ فرمائی.چه په دواړه صورتونوکې اختلاف دې.مدعی که ښځه وی.اوکه میړه وی.اوهم دازیات صحیح ده.اود فریقینو دلائل وړاندې تیر شوی دی.

## فصل في الشهادة على الإرث

(دا) فصل په میراث باندې د ګواهئ ور کاوه (په بیان کې) دې.

**تشریح:-** په دې فصل کې د هغه احکامو بیان دی.کوم چې مړو سره متعلق کیږي.مرګ چونکه په وجود کې د حیات نه روسته وی.په دې وجه مرګ سره متعلق د شهادت بیان هم روسته اوکړې شو.

## د پلار میراث ثابتولو لپاره د پلار په مړلې باندې د ګواه پیش کولو حکم

وَمَنْ أَقَامَ بَيِّنَةً عَلَى دَارٍ اوکه یوکس دکور په اړه کې دا بینه قائم کړل. أَنَّهَا كَانَتْ لِأَبِيهِ أَعَارَهَا چې دا کور دده (
دمدعی) د پلار وو.هغه قابض ته عاریة ورکړې وو. أَوْ أَوْدَعَهَا الَّذِي هِيَ فِي يَدِهِ فَإِنَّهُ يَأْخُذُهَا یا ئې په ودیعت (امانت)
ورکړې وو.نو مدعی به دا کور اخلي. وَلَا يُكَلَّفُ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ مَاتَ وَتَرَكَهَا مِيرَاثًا لَهُ او ګواهان به په دې نشی مجبوره کولې
چې دده پلار مړ شوې دې.اودا کور ئې دده لپاره میراث پرېښودې دې.

**حل اللغة:** ① الدار-کور-② اعار-په خواست ئې غوښتي-③ اودع-امانت ئې ایخودې-④ یکلف-ذمه وار کولې شي

**تشریح:**- صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی مثلاً عارف په دې خبره بینه قائم کړل.چه فلانې کور زما د پلار وو.هغه
د قابض سره ودیعت او امانت ایخودې وو.یا ئې هغه ته عاریة ورکړې وو.یا ئې هغه ته په کرایه باندې ورکړې
وو.نود مدعی چاچه بینه پیش کړې دی.یعنی عارف به ددې بینه په وجه دا کور اخلي.یعنی قاضی به د مدعی
لپاره د کور فیصله ورکوی.او مدعی یعنی عارف ته به ددې خبرې تکلیف نشی ورکولې.چه هغه په دې باندې
بینه پیش کړې.چه د هغه پلار مړشوې دې.اودا کورې ئې دده لپاره د میراث په طور پرېښودې دې.دا حکم د امام
صاحب او صاحبینو رحمهم الله په منځ کې متفق علیه دې.خو په تخریج کې اختلاف دې.

وَأَصْلُهُ أَنَّهُ مَتَى ثَبَتَ مِلْكُ الْمُوَرِّثِ لَا يَقْضِي بِهِ لِلْوَارِثِ او ددې قاعده داده.چه د طرفینو رحمهما الله په نیز هرکله ملك دمورث لپاره
ثابت شو.نو ددې ملك به وارث لپاره حکم نشی ورکولې. حَتَّى يَشْهَدَ الشُّهُودُ أَنَّهُ مَاتَ وَتَرَكَهَا مِيرَاثًا لَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ
رَحِمَهُمَا اللَّهُ[1] تردې چې ګواه ددې خبرې ګواهی ورکړی.چه مورث مړشوې دې.اوهغه د وارث لپاره دا شی
پرېښودې دې.

**حل اللغة:** ① متی -کله-② یقضی -فیصله کولې شی-③ ترک-پرېخودل-④ یشهد-ګواهی ورکړی

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د میراث د شهادت په سلسله کې د طرفینو رحمهما الله په نیز قاعده داده.چه
هرکله د مورث (مړی) لپاره ملکیت ثابت شو.نو ددې ملکیت حکم به د وارث لپاره نشی کولې.بلکه د ګواهانو
په ذریعه به وارث له دا ثابتول ضروری وی.چه دده مورث مثلاً پلار مړشوې دې.او هغه زما لپاره دا شی.مثلاً کور
د میراث په طور پرېښودې دې.ګویا د طرفینو رحمهما الله په نیز وارث لپاره دوې (دوه) شهادتونه پیش کول ضروری شو.د
یو شهادت په ذریعه د مورث مثلاً د پلار ملکیت ثابت کړې شو.اود دوهم شهادت په ذریعه د مورث مرګ اود
خپل ځان لپاره ددغه شی.مثلاً د کور میراث کیدل ثابت کړل.

خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله. (په دې کې) د امام ابویوسف رحمه الله اختلاف دې. هُوَ يَقُولُ: إِنَّ مِلْكَ الْوَارِثِ مِلْكُ الْمُوَرِّثِ فَصَارَتِ
الشَّهَادَةُ بِالْمِلْكِ مغوی فرمائی.چه د وارث ملك د مورث ملك وو لِلْمُوَرِّثِ شَهَادَةً بِهِ لِلْوَارِثِ.نود مورث لپاره دملکیت
ګواهی ورکول وارث لپاره د ملکیت ګواهی شوه.

**تشریح:**- او په دې قاعده کې د حضرت امام ابویوسف رحمه الله اختلاف دې.قاضی ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه هرکله د بینه
په ذریعه د مړی ملکیت ثابت شو.نود وارث ملکیت هم ثابت شو.ځکه چې کوم دمورث ملکیت وو.هم هغه د وارث
ملکیت دې.نو په کوم ګواهۍ سره چې د مورث ملکیت ثابت شوې دې.هم هغه ګواهۍ سره د وارث ملکیت هم هم
ثابت شو.د وارث ملکیت ثابتولو لپاره د کوم جلا شهادت اړتیا نشته.ددې قاعدې په رو سره دامام ابویوسف رحمه الله
په نیز دمتن مسئله بالکل واضح ده.یعنی د کوم بینه په ذریعه مدعی یعنی د عارف پلار یعنی د مورث لپاره د
کور مالك کیدل ثابت کړې شوی دی.هم دهغه بینه په ذریعه د وارث یعنی دعارف د میراث په طور د کورمالك

[1]) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير (٥١٩\٦) والعناية (٥٦٠\٦) والدر المختار (٤٣٥\١٤) نقلاً عن القول الراجح (١٢\١٤٠)-



کیدل ثابتیږی. د وارث ملکیت ثابتولو لپاره د جلا بینه پیش کاوه قطعا اړتیا نشته.

وَهُمَا يَقُولَانِ: إِنَّ مِلْكَ الْوَارِثِ مُتَجَدِّدٌ فِي حَقِّ الْعَيْنِ او طرفین رحمهما الله فرمائی.چه د وارث ملك د مال عین په حق کې جدید
وی. حَتَّى يَجِبَ عَلَيْهِ الِاسْتِبْرَاءُ فِي الْجَارِيَةِ الْمَوْرُوثَةِ، وَيَحِلُّ لِلْوَارِثِ الْغَنِيِّ تردې چې په مورثه وینځه کې وراث باندې استبراء
کول واجب دی. مَا كَانَ صَدَقَةً عَلَى الْمُوَرِّثِ الْفَقِيرِ فَلَا بُدَّ مِنَ النَّقْلِ اوبه مورث فقیرئې چې کوم شی صدقه وو.د توانګر
وارث لپاره حلال دې.نود ملك منتقل کیدل ضروری دی.

**حل اللغة:** ① متجدد -نوې-② الاستبراء-برې کول-③ الجارية-وینځه-④ یحل-جائز دی

**تشریح:**- خود طرفینو رحمهما الله په نیز په ښکاره د متن مسئله او د دوی په بیان کړې شوې قاعده کې تخالف دې.په دې
طریقه چې د طرفینو رحمهما الله په نیز قاعده خو داده.چه دوې (دوه) بینه پکار دی.یو د مورث ملکیت ثابتولو دپاره، او
بل د وارث ملکیت ثابتولو دپاره.اود متن په مسئله کې یو ډول بینه کافی ګڼرلې شوی دی.لکه چې فرمائی. ولا
یکلف البینة یعنی وارث ته به د دوهم بینه زحمت (او تکلیف) نشی ورکولې؟
خواب° ددې خواب دادې.چه قاعده هم داده.چه وارث به دوې (دوه) شهادتونه پیش کوی.یود مورث ملکیت
ثابتولو دپاره. دوهم د خپل ملکیت ثابتولو دپاره.خو په دې مسئله کې یو شهادت کافی کیږی.د قاعدې مطابق د
دوې (دوه) شهادتونو اړتیا ځکه دې.چه په کوم مال عین کې میراث ثابت شو.په هغې کې د وارث ملك نوې او
جدید دې.
لکه چې کومه وینځه وارث ته په میراث کې ملاویږی.په وارث باندې د هغې استبراء کول واجب دی.لکه څنګه
چې په مشتری باندې استبراء کول واجبیږی.اوکوم شی چې مورث فقیر ته د صدقه په طور ورکړې شوې وو.هغه
توانګر وارث لپاره حلالیږی.که د وارث ملك جدید او نوې نه وو.نو نه به په ده باندې استبراء واجب وه.اونه به د
صدقه مال حلال وو.نو هرکله چې د وارث ملك نوې اوجدید دې.نو مورث اړخ ته د ملك منتقل کول ضروری
دی.یعنی دوهم بینه ددې خبرې ګواهی ورکوی.چه مورث مړشوې دې.او هغه په میراث کې دا شی پرېښودې
دې.حاصل داچه په ړومبی بینه سره د مورث ملك ثابتیږی.او په دوهم بینه سره ددې ملك مورث نه وارث اړخ ته
منتقل کیدل ثابتیږی.په دې قاعده باندې د متن د مسئلې نه علاوه نورې ډیرې مسئلې متفرع دی.

إِلَّا أَنَّهُ يُكْتَفَى بِالشَّهَادَةِ عَلَى قِيَامِ مِلْكِ الْمُوَرِّثِ وَقْتَ الْمَوْتِ خودا چې د مورث د مرګ په وخت د مورث ملکیت قائمیدلو
ګواهۍ باندې به اکتفاء کولې شی. لِثُبُوتِ الِانْتِقَالِ ضَرُورَةً ځکه چې انتقال ضرورةً ثابت دې.

**حل اللغة:** ① یکتفی -اکتفاء کولې شی-② الموت-مرګ -③ الانتقال-منتقل کیدل-④ قیام-موجود کیدل

**تشریح:**- اود متن په مسئله کې په یوشهادت باندې اکتفاء ځکه کولې شی.چه هرکله د مورث د مرګ په وخت د
مورث ملکیت موجود کیدلو باندې شهادت ورکړې شو.نود مورث د مرګ په وخت د مورث ملکیت ثابت
شو.اوهرکله چې د مورث د مرګ په وخت د مورث ملکیت شهادت سره ثابت شو.نود هغه په مرګ سره به
غیراختیاری طور باندې هغه ملکیت وارث اړخ ته منتقل کیږی.نو هرکله چې ملکیت پخپله وارث اړخ ته منتقل
شو.نو ددې ثابتولو لپاره د بینه پیش کاوه هیڅ اړتیا نشته.او هرکله چې دبینه پیش کاوه اړتیا پاتې نشو.نو صرف
د مورث ملکیت ثابتولو لپاره به یو بینه کافی وی.

وَكَذَا عَلَى قِيَامِ يَدِهِ او دغه ډول د هغه دقبضې په قیام باندې، عَلَى مَا نَذْكُرُهُ لکه چې مونږ به دا انشاءالله ذکر کړو.

**تشریح:**- دغه ډول که د مورث د مرګ په وخت د بینه په ذریعه په یو شی باندې د هغه قبضه ثابت کړې شوه.نو په
قبضه ثابتولو سره به د هغه ملك ثابتولې شی.اود مورث ملك ثابتیدلو نه روسته د مورث په مرګ سره به هغه
ملك پخپله وارث اړخ ته منتقل کیږی.حاصل داچه د مورث قبضه په بینه سره د ثابتولو نه روسته نه د هغه په ملك
باندې د بینه پیش کاوه اړتیا دې.اونه وراث اړخ ته په منتقل کاوه باندې د بینه پیش کاوه اړتیا دې.ددې پوره
تفصیل به په بله کومه موقع باندې ذکر کړو.

وَقَدْ وُجِدَتِ الشَّهَادَةُ عَلَى الْيَدِ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ او د كتاب په مسئله كي د مورث د قبضي ګواهي اوموندلي شوه. لِأَنَّ يَدَ الْمُسْتَعِيرِ وَالْمُودَعِ وَالْمُسْتَأْجِرِ قَائِمَةٌ مَقَامَ يَدِهِ ځكه چي د مستعير، مودع، او مستاجر قبضه د مورث د قبضي قائم مقام ده. فَأَغْنَى ذَلِكَ عَنِ الْجَرِّ وَالنَّقْلِ نود مدعي د پلار قبضي د منتقل كيدلو د شهادت نه بې نيازه (او بې پرواه) كړلو.

**حل اللغة:** ① وجدت-موجود شو-② يد-قبضه-③ اغنى-بې پرواه كړه-④ الجر-رابنكل

**تشريح:**- د متن په مسئله كي هم د مورث په قبضه باندې ګواهي اوموندې شوه. په دې طريقه چي د متن په مسئله كي دمستعير (عاريه باندې د اخستونكي) مودع (امين) او مستاجر (اجرت باندې د اخستونكي) قبضه د بينه په ذريعه ثابت شوې ده. او ددې درې واړه حضراتو قبضه د مورث د قبضي قائم مقام ده. يعني د مستعير، مودع، او مستاجر قبضه ثابتول، په حقيقت كي د مورث قبضه ثابتول دي. او هركله چي د مورث قبضه ثابت شوه. نود هغه ملك هم ثابت شو. او هركله چي د مورث يعني د مدعي (عارف) د پلار ملك ثابت شو. نو هغه ملك به د مورث په مرګ سره پخپله وارث يعني عارف اړخ ته منتقل كيږي. د وارث د ملك ثابتولو لپاره به د هيڅ بينه ارتيا نه پيښيږي.

## د وارث د پلار د مرګه پورې په قبضه د ګواهۍ وركولو حكم

وَإِنْ شَهِدُوا أَنَّهَا كَانَتْ فِي يَدِ فُلَانٍ مَاتَ او كه ګواهانو داګواهي وركړله. چه دا كور د فلاني به قبضه كي وو. هغه مړشو وَهِيَ فِي يَدِهِ په داسې حال كي چي دا كور د هغه په قبضه كي موجود وو. جَازَتِ الشَّهَادَةُ نودا ګواهي جائز ده.

**تشريح:**- صورت د مسئلي دادې. كه ګواهانو دا ګواهي وركړله. چه په دې كورباندې د مدعي يعني د وارث د پلار قبض[illegible] ترمرګه پورې [illegible] او هغه په دې حال كي مړشو. چه كور د هغه په قبضه كي وو. نودا شهادت جائز دې. او ددې شهادت په نتيجه كي به وارث ددې كور مالك كيږي. د مورث يعني د مدعي دپلار د قبضي درې صورتونه دي. ① دا چي د هغه قبضه مالكانه وه. ② داچه د هغه قبضه غاصبانه وه. ③ دا چي د هغه قبضه د امانت په طور وه. په دې واړه صورتونو كي ګواهي صحيح ده.

لِأَنَّ الْأَيْدِيَ عِنْدَ الْمَوْتِ تَنْقَلِبُ يَدَ مِلْكٍ بِوَاسِطَةِ الضَّمَانِ دليل دا دې چي د مرګ په وخت كومه قبضه ده. هغه په واسطه د ضمان بدليږي. ملك د قبضه جوړيږي. وَالْأَمَانَةُ تَصِيرُ مَضْمُونَةً بِالتَّجْهِيلِ او امانت په مجهول پريښودلو سره مضمون كيږي. فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ الشَّهَادَةِ عَلَى قِيَامِ مِلْكِهِ وَقْتَ الْمَوْتِ نودا داسې شوه. لكه چي د مرګ په وخت د مدعي د پلار ملك موجود كيدلو باندې ګواهي وي.

**حل اللغة:** ① الايدي-جمع د يد، قبضه-② الموت-مرګ-③ منزلة-مرتبه، درجه-④ الضمان-تاوان

**تشريح:**- په رومبي صورت كي خو بلا شبه مملوكه شئ د هغه د خوې په ملك كي منتقل كيږي. ځكه چي د مورث په مړكيدلو سره د هغه واړه مملوكه شيان د هغه وارثانو اړخ ته ملك كي منتقل كيږي. په دوهم صورت كي چونكه د مورث قبضه غاصبانه وه. په دې وجه د مورث په مرګ سره به شئ مغصوب په هغه مضمون وي. او په غاصب چي هركله چي د مغصوب شئ ضمان واجبيږي. نو غاصب د هغې مالك كيږي. نو هركله چي غاصب يعني مورث په ضمان واجبولو سره د شئ مغصوب مالك شو. نود مورث د مرګ نه روسته به وارث د هغې مالك كيږي. په دريم صورت كي د مورث قبضه اګرچه د امانت په طور وه. خوكله چي هغه دا بيان نكړل. چه دا دچا امانت دې. اوهم داسې مجهول پريخودلي شو. نودا مورث به په آخرت كي ددې ضامن وي. او هركله چي مورث ددې ضامن شو. نوهغه خپل ملك پريښولو. او مړشو. او مورث چي كله خپل ملك پريږدي. او مړشي. نو وارث د هغې مالك كيږي. نو دغه وخت د مورث قبضه وه. كه قبضه د ملك وي. او كه قبضه د غصب وي. اوكه قبضه د امانت وي. نو وارث به هم ددغه شئ مالك شي. او ددې ګواهۍ هيڅ ارتيا نشته. چه د مورث ملكيت هم قائم وو. خودا واړه په هغه صورت كي دي. چه د مدعي وارث كيدل معدوم وي.



## د مدعي په قبضه باندې د ګواهانو د ګواهۍ حكم

وَإِنْ قَالُوا لِرَجُلٍ حَيٍّ او كه ګواهانو يو ژوندي سړي ته اووئيل. نَشْهَدُ أَنَّهَا كَانَتْ فِي يَدِ الْمُدَّعِي مُنْذُ شَهْرٍ موږ ګواهي كووچه دا كور د يو څومياشتو داسې د فلاني مدعي په قبضه كي وو لَمْ تُقْبَلْ [1] نودا ګواهي به نه قبليږي.

**حل اللغة:** ① حي-ژوندې-② اشهر-جمع د شهر، مياشت-③ يد-قبضه-④ الاخذ-اخستل

**تشريح:**- صورت د مسئلي دادې. چه يوكور د يو ژوندي سړي مثلاً د خالد په قبضه كي دې. دوهم سړې مثلاً حامد دعوه اوكړله. چه دا كور زما دې. او مدعي عليه (خالد) ددې انكار اوكړو. بيا مدعي يعني حامد بينه پيش كړل. اوګواهانو دا اووئيل. چه موږ ګواهي وركوو. چه كور د مدعي يعني د حامد په قبضه كي وو. نودا ګواهي به نه قبليږي. او ددې ګواهۍ په نتيجه كي به دا كور مدعي ته نشي واپس كولې. د طرفينو رحمهما الله قول هم دادې. او ظاهرالرواية هم دادې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهَا تُقْبَلُ او د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. چه دا ګواهي به قبلولې شي. ځكه لِأَنَّ الْيَدَ مَقْصُودَةٌ كَالْمِلْكِ، وَلَوْ شَهِدُوا أَنَّهَا كَانَتْ مِلْكَهُ تُقْبَلُ چي د ملك پشان قبضه هم مقصود وي. اوكه ګواهانو داګواهي وركړه. چه دا كور دهغه ملك وو. نو قبلولې به شي. فَكَذَا هَذَا صَارَ كَمَا إِذَا شَهِدُوا بِالْأَخْذِ مِنَ الْمُدَّعِي نوهم دغه ډول د قبضه ګواهي وركاوه په صورت كي به هم قبلولې شي. اودا داسې شوه. لكه چي ګواهانو د مد[illegible] ګواهي وركړله.

**تشريح:**- او د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. چه ذكرشوې ګواهي به قبلولې شي. او كور به مدعي اړخ ته واپس كولې شي. په متن كي د ،،رجل،، نه روسته د ،،حي،، قيد ځكه ذكر كړې شوې دې. كه ګواهان د مړي لپاره داګواهي وركړي. چه د مرګ په وخت كور ددې مړي په قبضه كي وو. نودا ګواهي به بالاجماع قبلولې شي. اودا كور به وارث اړخ ته منتقل كولې شي. بهرحال په مختلف فيه مسئله كي

د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې. چه قبضه داسې مقصود وي. لكه څنګه چي ملك مقصود وي. او د ملك په اړه كي حكم دادې. كه ګواه دا ګواهي وركړي. چه داكور كوم چي دې وخت كي دمدعي عليه يعني د خالد په قبضه كي دې. د مدعي يعني د حامد ملك وو. نودا ګواهي قبلولې شي. دغه ډول كله چي ګواهانو داګواهي وركړله. چه داكور د مدعي يعني د حامد په قبضه كي وو. نو بيا به هم ګواهي قبول وي. او كور به مدعي ته واپس كولې شي. اودا داسې شوه. لكه چي ګواهانو دا ګواهي وركړله. چه دا كور خو دمدعي يعني د حامد په قبضه كي وو. خو مدعي عليه كوم چي دې وخت قابض دې. هغه د مدعي يعني دحامد نه اخستې وو. نو په دې صورت كي ګواهي قبلولې شي. اوكور مدعي ته واپس كولې شي. نو دغه ډول كله چي ګواه دا ګواهي وركړي. چه داكور د مدعي يعني د حامد په قبضه كي وو. نودا ګواهي به هم قبلولې شي. اوكور به مدعي ته واپس كولې شي.

وَجْهُ الظَّاهِرِ وَهُوَ قَوْلُهُمَا أَنَّ الشَّهَادَةَ قَامَتْ بِمَجْهُولٍ او ظاهرالرواية كوم چي د طرفينو رحمهما الله قول دې. د هغې وجه داده. چه شهادت په يو مجهول قبضه باندې قائم شوې دې. لِأَنَّ الْيَدَ مُنْقَضِيَةٌ وَهِيَ مُتَنَوِّعَةٌ إِلَى مِلْكٍ وَأَمَانَةٍ وَضَمَانٍ فَتَعَذَّرَ الْقَضَاءُ بِإِعَادَةِ الْمَجْهُولِ ځكه چي د مدعي قبضه زائل شوې ده. حالانكه قبضه په درې قسمه وي. قبضه د ملك، قبضه امانت، قبضه ضمان. نود مجهول قبضي د واپس كاوه حكم وركول متعذر دي.

**حل اللغة:** ① منقضية-ختمه شوې-② ضمان-تاوان-③ القضاء-فيصله-④ اعادة-واپس كول

**تشريح:**- د ظاهرالرواية يعني د طرفينو رحمهما الله د قول وجه داده. چه في الحال د مدعي (حامد) قبضه موجود نه ده. او په

[1]) القول الراجح هوهذا ظاهر الرواية وهو قولهما كذا في الدرالمختار (٤٣٦/١٤) وفتح القدير (٥٢٠/٦) نقلاً عن القول الراجح (١٤١١/٢)-

ماضي کي د کومي قبضي چي ګواهانو ګواهي ورکړي ده.هغه درې قسمه کيدلي شي.① مالکانه قبضه: يعني دا کور د مدعى په قبضه کي ځکه دي.چه مدعى ددې مالك وو.② قبضه دامانت:يعني داهم کيداې شي.چه دا کور د مدعى په قبضه کي د وديعت او امانت په طور وو.③ د ضمان قبضه: يعني داکور د مدعى په قبضه کي د غصب په طور وو.يعنى مدعى دا کور غصب کړې وو.او په دې ئې قبضه کړې وه. بهرحال هرکله چي داسې ده.نود مدعى قبضه مجهول شوه.او شهادت په مجهول قبضه باندې قائم شو.حالاتکه د مجهول شئ په اړه کي د قاضي حکم کول متعذر دى.نوهرکله چي دمجهول شئ په اړه کي د قاضي قضاء (حکم) متعذر ده.نود جهالت قيام سره به ددې قبضي د اعادې حکم کول هم متعذر وى.يعنى د مدعى عليه (قابض) قبضه به نشي ختمولې.او مدعى ته به قبضه دوباره نشي ورکولي.

**بِخِلَافِ الْمِلْكِ لِأَنَّهُ مَعْلُومٌ غَيْرُ مُخْتَلِفٍ** په خلاف د ملك،ځکه چي هغه معلوم اوغير مختلف دي.

**تشريح:-** په دې عبارت سره دامام ابويوسف رحمه الله د اول قياس خواب دې.حاصل دخواب دادې.که ګواهانو دا ګواهي ورکړله.چه ددې کور مالك مدعى (حامد) دې.نودا ګواهي به ځکه قبلولې شي.چه ملك معلوم دې. غيرمختلف دې.يعنى ملك صرف قسم کيداې شي.اګرچه ددې اسباب مختلف وى.نوهرکله چي ملك معلوم او غير مختلف دې.نو ګواهي په معلوم شئ باندې قائم شوه.اوهرکله چي ګواهي په معلوم شئ باندې قائم شوه.نو د قاضي فيصله کول هم ممکن دى.نو قاضي به د ذکر شوې ګواهئ په نتيجه کي داحکم ورکوى.چه داکور د مدعى (حامد) دې.نودا دې مدعى اړخ ته واپس کړې شي.

**وَبِخِلَافِ الْأَخْذِ** په خلاف د اخستلو، **لِأَنَّهُ مَعْلُومٌ** ځکه چي هغه معلوم دې. **وَحُكْمُهُ مَعْلُومٌ** او د هغې حکم معلوم دې **وَهُوَ وُجُوبُ الرَّدِّ** او هغه د واپس کاوه واجب کيدل دى.

**تشريح:-** په دې عبارت سره د دوهم قياس خواب دې.ددې حاصل دادې.چه هرکله ګواهانو داګواهي ورکړله.چه مدعى عليه (قابض) داکور د مدعى نه اخستې وو.يعنى غصب کړې ئې وو.نود شهادت په ذريعه معلومه شوه.چه د مدعى عليه دا قبضه غاصبانه ده.او ددې حکم هم معلوم دې.يعنى مدعى (مغصوب منه) اړخ ته ددې واپس کول واجب دى.نو په دې صورت کي به هم قاضي دا کور مدعى اړخ ته د واپس کاوه حکم ورکوى.

**وَلِأَنَّ يَدَ ذِي الْيَدِ مُعَايَنٌ** او ځکه چي د قابض قبضه خو مشاهد دې. **وَيَدُ الْمُدَّعِي مَشْهُودٌ بِهِ** او د مدعى د قبضي ګواهي ورکړې شوې ده. **وَلَيْسَ الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ** حالاتکه خبر دمشاهدې پشان نه وى.

**حل اللغة:** ① ذي اليد -صاحب د قبضي- ② المعاينة-ليدل- ③ معاين-ليدونکې- ④ ليس-نه دې

**تشريح:-** د طرفينو دا اړخه دوهم دليل دادې.چه د قابض يعنى د مدعى عليه قبضه په سترګو سره مشاهده (او معائنه) ده.او د مدعى د قبضي صرف شهادت ورکړې شوې دې.او شهادت يو خبر دې.او خبر د مشاهدې برابر هيڅ کله نشي کيدلې.ځکه چي مشاهده مفيد د يقين وى.او خبر مفيد د ظن وى.نود مشاهدې په ذريعه چي کومه قبضه ثابت ده.هغه به راجح وى.اود خبر يعنى د شهادت په ذريعه چي کومه قبضه ثابت شوې ده.هغه به مرجوح وى.او ترجيح راجح ته حاصل وى.مرجوح ته حاصل نه وى.نو د مدعى عليه يعنى د قابض قبضي ته به ترجيح حاصل وى.اوکور به هم د هغه په قبضه کي پاتې کيږى.مدعى اړخ ته به نشي واپس کولي.

### د قابض مدعى عليه، مدعى لپاره د قبضي د اقرار کولو حکم

**وَإِنْ أَقَرَّ بِذَلِكَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ دُفِعَتْ إِلَى الْمُدَّعِي** او که مدعى عليه ددې اقرار اوکړو.نودا کور به مدعى ته واپس ورکولي شي. **لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِي الْمُقَرِّ بِهِ لَا تَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ** ځکه چي د مقربه مجهول کيدل د اقرار صحت لپاره مانع نه دې.

**حل اللغة:** ① دفعت -ورېه کړې شى- ② تمنع-منع کوى- ③ ههنا-دلته- ④ الجهالة -عدم علم

**تشريح:-** صورت د مسئلې دادې.که مدعى عليه (قابض) دا اقرار اوکړو.چه داکور د مدعى په قبضه کي وو. نودا



کور به د مدعى په قبضه کي واپس ورکولې شى.ځکه چي د کوم شئ اقرار ئې کړې دې.که هغه مجهول وى.يعنى دا معلوم نه وى.چه کوم ډول قبضه مدعى ته حاصل وه.نو بيا هم دا اقرار صحيح دې.اود مقربه جهالت د اقرار د صحت لپاره مانع نه دې.نود مدعى عليه د اقرار موافق به دا کور مدعى ته واپس ورکولې شى.اګرچه په دې سره د مدعى ملکيت نه ثابتيږى.

**وَإِنْ شَهِدَ شَاهِدَانِ** او که دوې (دوه) ګواهانو دا ګواهي ورکړله **أَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّهَا كَانَتْ فِي يَدِ الْمُدَّعِي** چي مدعى عليه دا اقرار کړې دې.چه داکور د مدعى په قبضه کي وو **دُفِعَتْ إِلَيْهِ** نودا کور به مدعى ته واپس ورکولې شى. **لِأَنَّ الْمَشْهُودَ بِهِ هَاهُنَا الْإِقْرَارُ** ځکه چي دلته کي مشهود به اقرار دې **وَهُوَ مَعْلُومٌ** او هغه معلوم دې.

**تشريح:-** دغه ډول که دوې (دوه) ګواهانو دا ګواهي ورکړله.چه مدعى عليه دا اقرار کړې دې.چه دا کور ددې مدعى په قبضه کي وو.نوبيا به هم مدعى ته واپس کولې شى.ځکه چي ګواهانو د کوم شئ ګواهي ورکړې ده.هغه اقرار دې.او اقرار يو معلوم شئ دې.اګرچه د مقربه يعنى د قبضي نوعيت (سبب) مجهول دې.او وړاندې تير شوى دى.چه د مقربه جهالت د اقرار مانع نه دې.نو په دې صورت کي به هم د ګواهئ موافق دا کور مدعى ته واپس ورکولې شى.اګرچه په دې سره به د مدعى ملکيت نه ثابتيږى.

## فصل في الشهادة على الشهادة

(دا) باب په ګواهئ باندې د ګواهئ ورکاوه (په بيان کي) دې.

**تشريح:-** د ،،شهادة على الشهادة،،صورت دادې.چه اصل ګواه کوم چي د معاملې مشاهده کړې ده.ياڼې بغير واسطې نه (براه راست) اوريدلى دى.په شهادت کي خپل نائب جوړ کړى.اود قاضي مجلس ته ئې اوليږى.
**وجه تاخير هـذا الفصل** ،،شهادة على الشهادة،،چونکه د شهادت د اصولو فرع ده.ځکه،،شهادة على الشهادة،،موخر کړې شو.ځکه چي اصل په فرع باندې مقدم وى.

### په کوم حق کښې ،،شهادة على الشهادة،،ورکول جائز دي؟

**قَالَ الشَّهَادَةُ عَلَى الشَّهَادَةِ جَائِزَةٌ فِي كُلِّ حَقٍّ** په ګواهئ باندې ګواهي ورکول په هر داسې حق کي ورکول جائز دى. **لَا يَسْقُطُ بِالشُّبْهَةِ** کوم چي په شبه سره نه ساقطيږى. **وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ** اودا استحسان دې.

**حل اللغة:** ① جائزة -جائزدې- ② يسقط-ساقطيږى- ③ الشبهة-شبه- ④ الشهادة-ګواهي

**تشريح:-** ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي.چه،،شهادة على الشهادة،،په هر داسې حق کي کوم چي د شبه په وجه نه ساقطيږى.استحساناً جائز دې.اګرچه قياساً جائز نه دې.وجه د قياس داده.چه شهادت عبادت بدنيه دې.کوم چي په شاهد اصل باندې لازم شوې دې.او شهادت د مشهود له حق نه دې.ځکه چي مشهود له ته نه شاهدانو سره د مخاصمې حق دې.اونه په ګواهي ورکاوه باندې د مجبوره کاوه حق دې.بهرحال شهادت يو بدنى عبادت دې.او په شاهد اصل باندې لازم دې.او په عبادات بدنيه کي نيابت نه جارى کيږى.نو،،شهادة على الشهادة،،کوم چي نيابت دې.هغه به هم نه جارى کيږى.اونه به جائز وى.خود خلګو د حقوقو ژوندى کاوه لپاره دلته کي قياس پريخودلې شوې دې.

**لِشِدَّةِ الْحَاجَةِ إِلَيْهَا،** دليل دا دې چي ددې اړتيا زيات دې. **إِذْ شَاهِدُ الْأَصْلِ قَدْ يَعْجِزُ عَنْ أَدَاءِ الشَّهَادَةِ لِبَعْضِ الْعَوَارِضِ** ځکه چي اصل ګواه کله د بعض عوارضو په وجه عاجز وى. **فَلَوْ لَمْ تَجُزِ الشَّهَادَةُ عَلَى الشَّهَادَةِ أَدَّى إِلَى إِتْوَاءِ الْحُقُوقِ** نوکه،،شهادة على الشهادة،، جائز نشي.نود حقوقو ضائع کاوه سبب به وى. **وَلِهَذَا جَوَّزْنَا الشَّهَادَةَ عَلَى الشَّهَادَةِ** په دې وجه موږ،،شهادة على الشهادة،،جائز ګرځولې دې. **وَإِنْ كَثُرَتْ** اګرچه د فرع شهود زيات وى.

**حل اللغة:** ① شدة -زيات- ② يعجز-عاجز کيږى- ③ العوارض-جمع د عارض،عذر - ④ التواء-ضائع کيدل

**تشریح:**- وجه د استحسان داده.چه د،،شهادة علی الشهادة،،سخت ارتیا دې.ځکه چې کله شهود اصل (اصلي ګواه) د عوارضو په وجه د شهادت ادا کاوه نه عاجز کیږي.مثلاً شهود اصل بیمار وي.یا په سفر کې وي.یا د خپل څه مصروفیت په وجه د قاضي په مجلس کې نشي راتلې.نو په داسې صورت کې که،،شهادة علی الشهادة،،جائز اونه ساتلې شي.نود خلګ و( مدعیانو) حقوق به تلف (ضائع) شي.حالانکه د خلګو حقوق تلف کول ناجائز دي.اود هغې ژوندی کول واجب دي.نوهم ددې سخت حاجت په وجه ،،شهادة علی الشهادة،،جائز اوګرځولې شو.اګرچه شهود فرع زیات وي.

① د شهود فرع د زیادت دوې (دوه) مطلبونه دي.① یو داچه دوې (دوه) ګواهان خپل نائب مقرر کړي.بیا دې نائبانو خپل نائب مقرر کړل.بیا هغوی خپل نائب مقرر کړل....علی هذا القیاس.په دې صورت کې به،،ان کثرت،،د،،وان بعدت،،په معنی کې وي.② دوهم مطلب دادې.چه شهود اصل دوې (دوه) دي.په دوی کې هر یو خپلې ګواهۍ باندې دوې (دوه) ګواهان مقرر کړل.بیا په شهود فرع څلور واړه کې هریو خپلې ګواهۍ باندې دوې (دوه) ګواهان مقرر کړل.نو په دې صورت کې به ،،وان کثرت،، پخپله معنی کې وي.او معنی به دا وي.چه د شهود فرع تعداد څومره زیات ولې نه وي.

| |
|---|
| **اِلَّا اَنَّ فِيهَا شُبْهَةً مِنْ حَيْثُ الْبَدَلِيَّةِ اَوْ مِنْ حَيْثُ اَنَّ فِيهَا زِيَادَةَ احْتِمَالٍ**،خو په دې کې شبه ده.د بدلیت په اعتبار سره.یا په دې اعتبار سره چې په دې کې زیات احتمال دې. **وَقَدْ اَمْكَنَ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ بِجِنْسِ الشُّهُودِ فَلَا تُقْبَلُ فِيمَا تَنْدَرِءُ بِالشُّبُهَاتِ كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ** حالانکه د جنس شهود په ذریعه ددې نه بچ کیدل ممکن دي.نو په داسې ځیزونوکې به نه قبلیږي.کوم چې په شبهاتو سره لرې کیږي.لکه حدود او قصاص. |

**حل اللغة:** ① الاحتراز-بچ کیدل-② یندرئ-دفع کولې شي-③ الشبهات-جمع د شبهة،شك-④ امکن-ممکن دي

**تشریح:**- البته دومره خبره ده.چه د فروع په شهادت کې یو ډول شبه ده.شبه خو یا په دې اعتبار سره ده.چه فروع د اصول بدل دي.او بدل ارخ ته هغه وخت رجوع کولې شي.کله چې انسان د اصل نه عاجز شي.او دلته کې هم داسې دي.یعنی شهادت فروع ارخ ته د شهادت اصل نه د عجز په وخت رجوع کولې شي.بهرحال شهادت فرع بدل دې.او په بدل کې د اصل په نسبت یو ډول شبه وي.یا په شهادت فرع کې په دې اعتبار سره شبه ده.چه په دې کې احتمال د کذب زیات دې.یعنی په اصل ګواهانو کې د هغوی د نه معصوم کیدلو په وجه د دروغو احتمال وو.نو په فروع کې به احتمال نورهم زیات وي.بهرحال په شهادت فروع کې یو ډول شبه ده.او جنس شهود یعنی د شهود اصل په ذریعه د شهادت فروع نه بچ کیدل هم ممکن دي.په دې طریقه چې د اصول تعداد زیات وي.که بعضو ته عذر راپیښ شو.نو پاته نور شهود اصل به ګواهي ورکوي.بهرحال هرکله چې په شهادت فرع کې شبه ده.اود شهود اصل په ذریعه ددې نه بچ کیدل هم ممکن دي.نود شهود فرع شهادت به په داسې ځیزونوکې نه قبلیږي.کوم شیان چې د شهادت په وجه ساقطیږي.لکه حدود او قصاص.

## د،،شهادة علی الشهادة،،شرعي حیثیت

| |
|---|
| **وَتَجُوزُ شَهَادَةُ شَاهِدَيْنِ عَلَى شَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ** اود دوې (دوه) ګواهانو په ګواهۍ باندې د دوې (دوه) ګواهانو ګواهي جائز ده. |

**تشریح:**- ابو الحسین قدوري ﷫ فرمائي.چه زموږ په نیز د دوې (دوه) اصلي ګواهانو ګواهۍ باندې د دوې (دوه) فرعي ګواهانو ګواهي جائز ده.یعنی دوې (دوه) فرعي ګواه مخکې د یواصل ګواه ګواهي نقل کړي.بیا هم دغه دواړه د دوهم اصل ګواه نقل کړي.دغه ډول دوې (دوه) فرعي ګواه د دواړه اصلي ګواهانو ګواهي نقل کولې شي.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا تَجُوزُ اِلَّا الْاَرْبَعُ عَلَى كُلِّ اَصْلٍ اِثْنَانِ** او امام شافعي ﷫ فرمائي.چه د څلورونه کم جائز نه ده.په هر اصلي ګواه باندې به دوې (دوه) ګواهان وي. **لِاَنَّ كُلَّ شَاهِدَيْنِ قَائِمَانِ مَقَامَ شَاهِدٍ وَاحِدٍ** ځکه چې هر دوې (دوه) شاهد فرع د یو اصلي ګواه قائم مقام دي. **فَصَارَا كَالْمَرْاَتَيْنِ** نود دوې (دوه) ښځو پشان شو. |

**حل اللغة:** ① الاربع-څلور-② اثنان-دوه-③ المراتین-تثنیه د المراة،ښځه-④ صار-اوګرځیدو

**تشریح:**- حضرت امام شافعي ﷫ فرمائي.چه د دوې (دوه) اصلي ګواهانو ګواهي نقل کاوه لپاره د څلورو فرعي ګواهانو کیدل ضروري دي.یعنی دوې (دوه) فرعي ګواه به د یو اصلي ګواه ګواهي نقل کوي.او نور دوې (دوه) فرعي ګواه به د دوهم اصلي ګواه ګواهي نقل کوي.

① د امام شافعي ﷫ دلیل دادې.چه دوې (دوه) فرعي ګواه د یو اصلي ګواه قائم مقام دي.لکه څنګه چې دوې (دوه) ښځې د یوسړي قائم مقام وي.نوهرکله چې د یو اصلي قائم مقام دوې (دوه) فرعي ګواهي وي.نود دوې (دوه) اصلي ګواهانو قائم مقام کیدلو لپاره به د څلورو فرعي ګواهانو کیدل ضروري وي.

| |
|---|
| **وَلَنَا قَوْلُ عَلِيٍّ ﷜** او زموږ دلیل د حضرت علي ﷜ قول دې. **لَا يَجُوزُ عَلَى شَهَادَةِ رَجُلٍ** چې د یوسړي په شهادت باندې جائز نه دې. **اِلَّا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ** (١) مګر د دوې (دوه) سړو شهادت. |

**تشریح:**- زموږ ① دلیل د حضرت علي ﷜ قول دې. «لا یجوز علی شهادة رجل إلا شهادة رجلین» یعنی د یوسړي په شهادت باندې د دوې (دوه) سړو شهادت ضروري دې.مطلب دادې.چه دوې (دوه) فرعي ګواه به یوځل د یو اصلي ګواه ګواهي نقل کړي.او یو ځل به د دوهم اصلي ګواه ګواهي نقل کړي.دغه ډول به د هر اصلي ګواه په ګواهۍ باندې دوې (دوه) فرعي ګواهان هم شي.اود فرعي ګواهانو تعداد به هم د دوې (دوه) نه نه زیاتیږي.او څلور کیږي به نه.لکه څنګه چې فقیه مرتاض حضرت امام شافعي رح نور الله مرقده فرمائیلي دي.

| |
|---|
| **وَلِاَنَّ نَقْلَ شَهَادَةِ الْاَصْلِ مِنَ الْحُقُوقِ** اوځکه چې اصل ګواهي نقل کول د حقوق ځنې دي. **فَهُمَا شَهِدَا بِحَقٍّ** نو دې دواړو مخکې د یو حق ګواهي ورکړله. **ثُمَّ شَهِدَا بِحَقٍّ آخَرَ** بیا دوی د دوهم حق ګواهي ورکړله. **فَتُقْبَلُ** نودا ګواهي به قبول وي. |

**تشریح:**- دوهم دلیل دادې.چه د اصلي ګواه ګواهي نقل کول د حقوق الناس ځنې دي.اود یوحق ثابتولو لپاره د نصاب شهادت( دوې (دوه) ګواهان) کیدل ضروري دي.نو دوې (دوه) فرعي ګواهانو چې د یو اصلي ګواه ګواهي نقل کړله.نو ګویا چې هغوی په یوحق باندې شهادت ورکړو.او په دې باندې نصاب شهادت هم پوره شو.بیا هم دوی فرعي ګواهانو هرکله چې د دوهم اصلي ګواه ګواهي نقل کړله.نو ګویا دوی د مخکني حق نه علاوه په دوهم حق باندې ګواهي ورکړله.او په دې باندې هم نصاب شهادت اوموندې شو.اودا خبره هم مسلم ده.چه دوې (دوه) ګواهان بلا ناغه په مختلف حقوقو باندې ګواهي ورکولې شي.نوهرکله چې په شهود اصل کې د هریو په شهادت نقل کاوه باندې نصاب شهادت اوموندې شو.نود ذکر شوي دواړه فرعي ګواهانو ګواهي به قبلولې شي.په خلاف د دوې (دوه) ښځو د شهادت.ځکه چې دوې (دوه) ښځې د یوسړي په مرتبه کې وي.په دې وجه صرف په دوې (دوه) ښځو سره نصاب نه پوره کیږي.اوهرکله چې په دوې (دوه) ښځو سره نصاب شهادت نه پوره کیږي.نو د دوی په شهادت باندې به د قاضي فیصله هم نه مرتب کیږي.

| |
|---|
| **وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ وَاحِدٍ** اود یو شهادت به په یو باندې قبول نه وي. **عَلَى شَهَادَةِ وَاحِدٍ لِمَا رَوَيْنَا**،د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړې دې. **وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اودا د امام مالك ﷫ خلاف حجت دې. |

**تشریح:**- په ذکرشوې مسئله کې د حضرت امام مالك ﷫ په نیز یو فرعي ګواه کافي دې.یعنی یو فرعي ګواه به یوځل د یو اصلي ګواه ګواهي نقل کړي.او یو ځل به د دوهم اصلي ګواه ګواهي نقل کړي.نو دغه ډول یو فرعي ګواه کافي دې.علامه بدرالدین عیني ﷫ فرمائي.چه دا د امام مالك ﷫ مذهب نه دې.بلکه د هغوی نه یو روایت کیداې شي.د هغوی مذهب هم هغه دې.کوم چې زموږ مذهب دې.هم دا علامه ابن الهمام ﷫ فرمائیلي دي.نوهرکله چې د هغوی مذهب نشونو لکه څنګه چې علامه مرغیناني ﷫ د امام مالك لپاره دلیل نه دې ذکر کړې دغه ډول موږ هم امام مالك ﷫ ته چې د کوم مذهب نسبت شوې دې د هغې د دلائلو نه اعراض کوو.البته علامه

(١) غربه الزیلعي بهذا اللفظ ثم أخرج عن علي﷜ قال لایجوز علی شهادة المیت إلا رجلان (نصب:١٨٤\٤)_

د مذهب تردید کوی.نودهغې بیان دا دي.
مرغینانی رحمه الله دحضرت امام مالك رحمه الله قول ذکر کړو.نو فرمايي حضرت علی رضی الله عنه قول د حضرت امام مالك رحمه الله صاحب د هدایه هرکله د حضرت علی رضی الله عنه قول ذکر کړو.نو فرمايي حضرت علی رضی الله عنه قول د حضرت امام مالك رحمه الله خلاف حجت دي.ځکه چې په دې قول کې دا خبره په صراحت سره موجود ده.چه د یواصلی گواه گواهی نقل کاوه لپاره دوي (دوه) فرعی گواهان ضروری دی.حالانکه امام مالك رحمه الله د یوفرعی گواه کافی گڼړي.

**وَلِأَنَّهُ حَقٌّ مِنَ الْحُقُوقِ** اوځکه چې د اصل گواهی نقل کول په حقوقو کې یو حق دي. **فَلَا بُدَّ مِنْ نِصَابِ الشَّهَادَةِ** نود شهادت نصاب ضروری دي.

**تشریح:**- د امام مالك رحمه الله خلاف عقلی دلیل دادې.چه شهادت نقل کول یو ډول حق دي.اود یو حق ثابتولو لپاره نصاب شهادت ضروری دې.نود اصل گواهی گواهی نقل کاوه لپاره د دوي (دوه) فرعی گواهانو کیدل ضروری دي.یو فرعی گواه به کافی نه وي.لکه څنگه چې زموږ د بزرگ حضرت امام مالك رحمه الله قول دې.ددې په خلاف د احادیثو روایت دې.چه دا چونکه د حقوقو څنې نه دې.په دې وجه احادیث یو سړې هم د یوسړي نه روایت کولې شي.

### په شهادت باندې د گواه جوړولو طریقه

**وَصِفَةُ الْإِشْهَادِ** او پخپله گواهۍ باندې د گواه جوړولو طریقه داده. **أَنْ يَقُولَ شَاهِدُ الْأَصْلِ لِشَاهِدِ الْفَرْعِ: اشْهَدْ عَلَى شَهَادَتِي** چې شاهد اصل به شاهد فرع ته دا وائی.چه ته زما په شهادت باندې شهادت ورکړه. **أَنِّي أَشْهَدُ أَنَّ فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ أَقَرَّ عِنْدِي بِكَذَا** چې زه شهادت ورکوم.چه فلان بن فلان زما په وړاندې داسې اقرار کړې دې. **وَأَشْهَدْتُنِي عَلَى نَفْسِهِ** اوزه ئې پخپل ذات باندې شاهد جوړ کړې یم.

**حل اللغة:** ① صفة -طریقه ② -الاشهاد-گواه جوړول-③ التحمیل-بارکول-④ التوکیل-وکیل جوړول

**تشریح:**- د شاهد اصل شاهد فرع پخپل شهادت باندې د گواه کاوه طریقه داده.چه شاهد اصل شاهد فرع ته داسې اووائی.چه زه شهادت ورکوم.چه فلان بن فلان زما په وړاندې د فلان بن فلان لپاره د فلانی حق اقرار کړې دې.او مقر پخپل ذات باندې زه گواه مقرر کړې یم.

**لِأَنَّ الْفَرْعَ كَالنَّائِبِ عَنْهُ** دلیل دا دې چې فرعی گواه گویا د اصلی گواه نائب دې **فَلَا بُدَّ مِنَ التَّحْمِيلِ وَالتَّوْكِيلِ** نو گواهی بارکول او وکیل جوړول ضروری دی. **عَلَى مَا مَرَّ** لکه څنگه وړاندې تیر شو.

**تشریح:**- په شهادت فرع کې د شاهد اصل، شاهد فرع پخپل شهادت باندې د گواه کاوه شرط ځکه لگولې شوې دې.چه گویا شاهد فرع د شاهد اصل نائب دې.او نائب جوړول ضروری دی.د نائب جوړولو نه بغیر څوك سړې نائب نشی کیدلې.نود شاهد اصل، شاهد فرع پخپله گواهۍ باندې گواه کول ضروری دی.
؟ ،،شهادة علی الشهادة،، به هغه وخت حجت وي.کله چې شاهد فرع د شاهد اصل شهادت د قاضی په مجلس کې منتقل کړي.او شاهد فرع ته د شاهد اصل شهادت د قاضی په مجلس کې هغه وخت د منتقل کاوه اجازت وي.کله چې شاهد اصل په هغه باندې د شهادت بوج اچولې وي.بهرحال ثابته شوه.چه د ،،شهادة علی الشهادة،، لپاره تحمیل یعنی د شاهد اصل، شاهد فرع ته ،،اشهد علی شهادتی،، وئیلو سره په هغه باندې د شهادت بار اچولو،او هغه حامل شهادت جوړول ضروری دی.او شاهد فرع چونکه د شاهد اصل وکیل دې.په دې وجه دده وکیل جوړول هم ضروری دی.ددې تفصیل د ،،فصل ما یتحمله الشاهد،، لاندې تیر شوې دې.

**وَلَا بُدَّ أَنْ يَشْهَدَ** ضروری ده.چه اصلی گواه هم دغه ډول شهادت ورکړي **كَمَا يَشْهَدُ عِنْدَ الْقَاضِي** لکه څنگه چې د قاضی په وړاندې شهادت ورکوی. **لِيَنْقُلَهُ إِلَى مَجْلِسِ الْقَضَاءِ** چې شاهد فرع دا د قاضی په مجلس کې منتقل کړي.

**حل اللغة:** ① ینقل -نقل کړي-② حل-جائز دی-③ القضاء-فیصله-④ یشهد-گواهی کوی

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه شاهد اصل به د شاهد فرع په وړاندې داسې شهادت اداکوی.لکه څنگه



چې د قاضی په مجلس کې اداکوی.چه شاهد فرع د شاهد اصل نه واوري.او من وعن (هو بهو) ئې د قاضی په مجلس کې منتقل کړي.یعنی لکه څنگه ئې چې اصل بیانوی هم دغه ډول به ئې فرع د قاضی مجلس ته اورسوي.

**وَإِنْ لَمْ يَقُلْ أَشْهَدَنِي عَلَى نَفْسِهِ جَازَ** اوکه اصلی گواه ،،اشهد علی نفسه،، اونه وئیل.نو بیا هم جائز دی. **لِأَنَّ مَنْ سَمِعَ إِقْرَارَ غَيْرِهِ حَلَّ لَهُ الشَّهَادَةُ** ځکه چې یو کس د بل اقرار واوریدلو.د هغه لپاره گواهی ورکول حلالیږي. **وَإِنْ لَمْ يَقُلْ لَهُ اشْهَدْ** اګرچه مقر یا مدعی علیه هغه ته ،،اشهد،، نه وی وئیلی.

**تشریح:**- اوکه شاهد اصل شاهد فرع ته داسې نه وی وئیلې.چه مقر زه پخپل ذات باندې گواه گرځي ووم.نودا هم جائز دی.ځکه چې کوم کس د بل سړي اقرار آوریدلې دې.د هغه لپاره گواهی ورکول حلال دی.اگرچه مقر داسې نه وی وئیلې.چه ته زما په ذات باندې گواه شه.

### په گواهۍ باندې د گواهۍ ورکولو طریقه

**وَيَقُولُ شَاهِدُ الْفَرْعِ عِنْدَ الْأَدَاءِ** گواهۍ اداکاوه په وخت به شاهد فرع داسې وائی،، **أَشْهَدُ أَنَّ فُلَانًا أَشْهَدَنِي عَلَى شَهَادَتِهِ** ورد زه گواهی ورکوم.چه فلانی سړي زه پخپله گواهۍ باندې گواه کړي یم. **أَنَّ فُلَانًا أَقَرَّ عِنْدَهُ بِكَذَا** چې فلانی سړي د اصل گواه په وړاندې د فلانی حق اقرار کړې دې. **وَقَالَ لِي اشْهَدْ عَلَى شَهَادَتِي بِذَلِكَ** او اصلی گواه ماته اووئیل.چه ته زما په دې گواهۍ باندې گواه یې،،

**تشریح:**- ابو الحسین قدوری رحمه الله د فرعی گواه د گواهۍ کیفیت بیانولو کې فرمائی.چه شاهد فرع به د قاضی په مجلس کې د شهادت اداکاوه په وخت داسې وائی.چه،، زه گواهی ورکوم.چه فلان بن فلان زه پخپله گواهۍ باندې گواه کړې یم.چه فلان بن فلان دده په وړاندې د فلان بن فلان لپاره ددې حق اقرار کړې دې.او(اصلی گواه) ماته اووئیل.چه ته زما په دې گواهۍ باندې گواه شه،،

**لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ شَهَادَتِهِ** دلیل دا دې چې د شاهد فرع شهادت ضروری دې. **وَذِكْرِ شَهَادَةِ الْأَصْلِ** او دده د اصلی گواه گواهی ذکر کول **وَذِكْرِ التَّحْمِيلِ** او دده (شاهد اصل) د شاهد فرع د گواه کاوه ذکر کول هم ضروری دی.

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه ددې پوره عبارت وئیلو وجه داده.چه د شاهد فرع شهادت ضروری دې.نو هغه به وائی.چه،،زه شهادت ورکوم،، اودا هم ضروری ده.چه شاهد فرع خپل خان باندې د شهادت بوج بار کاوه ذکر اوکړي.نو هغه به وائی.چه،،شاهد اصل ماته وئیلی دی.چه ته زما په دې شهادت باندې شاهد شه،،

**وَهَا هُنَا لَفْظٌ أَطْوَلُ مِنْ هَذَا وَأَقْصَرُ مِنْهُ** شهادت فرع لپاره پورته ذکر شوی لفظ نه زیات اوکم هم جائز دی. **وَخَيْرُ الْأُمُورِ أَوْسَطُهَا** د او په امورو کې اوسط غوره وی.

**حل اللغة:** ① اطول -زیات اوږد-② اقصر-مختصر-③ اوسط-درمیانه-④ خیر-غوره

**تشریح:**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د اداکاوه په وخت شاهد فرع د پورته ذکر شوی عبارت نه په اوږد عبارت کې هم خپل مقصود اداکولې.اوپه کم عبارت کې هم اداکولې شي. اوږد عبارت مثلاً شاهد فرع د قاضی په وړاندې داسې اووائی.چه،،زه شهادت ورکوم.چه فلانی زما په وړاندې شهادت ورکړې دې.چه د فلانی لپاره په فلانی باندې دومره قدرې مال دې.اوزه ئې پخپل شهادت باندې شاهد جوړ کړې یم.او ماته ئې حکم کړې دې.چه زه د هغه په شهادت باندې شهادت ورکړم.نو اوس زه د هغه په شهادت باندې شهادت ورکوم،،او کم عبارت مثلاً شاهد فرع د قاضی په وړاندې داسې اووائی.چه،،زه د فلانی په شهادت باندې د فلانی شي په اړه کې شهادت ورکوم،،او په قدوری کې ذکرشوې عبارت منځنی دې.نه په دې کې اوږدوالې دې اونه اختصار دې.اود ،،خیر الامور اوسطها،، قاعده مشهور ده.په دې وجه اوږد او مختصر عبارتونه پریښودې شوی دی.اودا عبارت اختیار کړې شوې دې.

## په.. اشهدني فلان على نفسه..سره د سامع د ګواهۍ ورکولو حکم

وَمَنْ قَالَ أَشْهَدَنِي :فُلَانٌ عَلَى نَفْسِهِ او که يو کس اووئيل چه فلانی زه پخپل ذات باندې ګواه کړې يم. لَمْ يَشْهَدِ السَّامِعُ عَلَى شَهَادَتِهِ سامع به دده په ګواهۍ باندې ګواهی نه ورکوی حَتَّى يَقُولَ لَهُ اشْهَدْ عَلَى شَهَادَتِي تردې چې اصلی ګواه داسې اونه وائی چه ته زما په ګواه باندې ګواه شه.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې چه شاهد مثلاً عارف اووئيل چه فلانی مثلاً واصف پخپل ذات باندې زه ګواه جوړ کړې يم او يو سړی مثلاً خالد د ګواه يعنی د عارف دا قول واورېدلو نو خالد به شاهد فرع نه جوړيږی او د شاهد اصل (عارف) په ګواهۍ باندې به د ګواهۍ ور کاوه اجازت نه وی البته که شاهد اصل (عارف) شاهد فرع يعنی خالد ته دا اووائی چه ته زما په ګواهۍ باندې ګواه شه نو بيا د شاهد فرع (خالد) لپاره د ،،شهادة على الشهادة،، اجازت دې.

لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ التَّحْمِيلِ دليل دا دې چې ګواهی اوچتول ضروری دی.

تشريح:- دليل دادې چه د ،،شهادة على الشهادة،، لپاره تحميل (په شاهد فرع باندې د شهادت بوج اچول) بالاتفاق ضروری دی.

وَهَذَا الظَّاهِرُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ او دا د امام محمد ﷫ په نيز ښکاره دې. لِأَنَّ الْقَضَاءَ عِنْدَهُ بِشَهَادَةِ الْفُرُوعِ وَالْأُصُولِ جَمِيعًا ځکه چې د امام محمد ﷫ په نيز د قاضی حکم ورکول د فروع او اصول د دواړو په شهادت سره کيږی. حَتَّى اشْتَرَكُوا فِي الضَّمَانِ عِنْدَ الرُّجُوعِ تردې چې د رجوع په وخت دواړه فريق په تاوان کې شريك وی.

حل اللغة: ① جميع -ټول- ② الفروع- اولاد- ③ الاصول- پلار نيکه، وغيره- ④ الرجوع -واپس کيدل

تشريح:- د امام محمد ﷫ په نيز خو ځکه چې شاهد فرع ته د حق يعنی د مشهود به هيڅ علم نه وی بلکه هغه خو د شاهد اصل وکيل جوړيږی او د هغه شهادت د قاضی مجلس اړخ ته منتقل کوی او قاضی د اصول او فروع دواړو په شهادت باندې حکم صادر کوی که اصول او فروع دواړو د شهادت نه رجوع اوکړله نو د امام محمد ﷫ په نيز به په تاوان کې دواړه فريق شريك وی د دواړو د شريکيدلو مطلب دا هيڅ چرې نه دې چه د نصف تاوان فيصله به په اصول باندې کولې شی او د نصف فيصله به په فروع باندې کولې شی بلکه مراد دادې چه مشهود عليه ته به اختيار وی چه هغه د اصول نه د تاوان مطالبه اوکړی يا د فروع نه د تاوان مطالبه اوکړی لکه مثلاً که د غاصب نه شئ مغصوب کړې شو نو مغصوب منه ته به اختيار وی چه هغه د غاصب نه د تاوان مطالبه اوکړی يا د غاصب الغاصب نه د تاوان مطالبه اوکړی.

بهرحال د امام محمد ﷫ په نيز شاهد فرع وکيل جوړيږی او شهادت نقل کوی او وکيل هغه وخت وکيل کيدای شی کله چې موکل هغه ته ددې حکم اوکړی نو شاهد فرع به هم هغه وکيل وی کله چې شاهد اصل هغه ته د شهادت نقل کاوه امر اوکړی او د شهادت نقل کاوه د امر کاوه نوم تحميل شهادت دې نو ثابته شوه چه د امام محمد ﷫ په نيز تحميل شهادت ضروری دې.

وَكَذَا عِنْدَهُمَا او هم دغه ډول د شيخينو ﷬ په نيز. لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ نَقْلِ شَهَادَةِ الْأُصُولِ ځکه چې د اصول شهادت نقل کول ضروری دی لِيَصِيرَ حُجَّةً چې حجت شی. فَيَظْهَرُ تَحْمِيلُ مَا هُوَ حُجَّةٌ نو کوم شئ چې حجت وی د هغې بار کول (اوچتول) به ضروری وی.

حل اللغة: ① تصير -ګرځی- ② يظهر -ښکاره کيږی- ③ تحميل -بار کول- ④ حجة -دليل

تشريح:- اود شيخينو ﷬ په نيز تحميل شهادت ځکه ضروری دې چه د شيخينو ﷬ په نيز شاهد فرع د شاهد اصل وکيل نه جوړيږی تردې که شاهد اصل شاهد فرع ته دا اووائی چه ته زما په شهادت باندې شهادت ورکړه او بيا شاهد اصل هغه منع کړو نود هغه منع کول به صحيح نه وی اود شاهد فرع د شاهد اصل په شهادت باندې شهادت ورکول به جائز وی که شاهد فرع د شاهد اصل وکيل وو لکه څنګه چې امام محمد ﷫ فرمائی نود شاهد اصل د



منع کاوه نه روسته به شاهد فرع ته د شهادت ور کاوه حق نه وو ځکه چې د موکل منع کولو نه روسته وکيل، وکيل نه پاتې کيږی بهرحال شاهد فرع اګرچه د شاهد اصل وکيل نه دې خو د شهادت اصول د حجت جوړولو لپاره ضروری دی چه شهود فرع د اصول شهادت د قاضی په مجلس کې نقل کړی ځکه چې شهادت فی نفسه حجت نه وی بلکه هغه وخت حجت وی کله چې دا د قاضی په مجلس کې منتقل کړې شی بهرحال معلومه شوه چه شهود فرع باندې د شهادت اصول حجت جوړولو لپاره دقاضی په مجلس کې نقل کول ضروری دی او د نقل کاوه لپاره تحميل ضروری دې يعنی شهود فرع ته د اصول شهادت نقل کاوه هغه وخت اجازت وی کله چې شهود اصل په دوی باندې د شهادت بوج اچولې وی او ددې ذمه دار نې جوړ کړې وی نو ثابته شوه چه تحميل شهادت د شيخينو ﷬ په نيز هم ضروری دې.

## د شهود فرع ګواهی کله قبلول ښکار دی؟

قَالَ وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ شُهُودِ الْفَرْعِ او د شهود فرع شهادت به نشی قبلولې. إِلَّا أَنْ يَمُوتَ شُهُودُ الْأَصْلِ أَوْ يَغِيبُوا مَسِيرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا خو دا چې شهود فرع مړه شی يا د درې ورځو يا زيات مسافه باندې غائب شی أَوْ يَمْرَضُوا مَرَضًا لَا يَسْتَطِيعُونَ مَعَهُ حُضُورَ مَجْلِسِ الْحَاكِمِ يا داسې بيمار شی چه هغې (بيمارۍ) سره د حاکم په مجلس کې نشی حاضريدلې.

حل اللغة: ① يموت -مړ کيږی- ② يغيبوا- غائب کيږی- ③ مسيرة- فاصله- ④ حضور- حاضريدل

تشريح:- ابو الحسين قدوری ﷫ فرمائی چه د شهود فرع شهادت په درې وجوکې په يو وجه سره قبلولې شی ① يا خو شهود اصل مړه شوی وی ② يا شهود اصل د سفر په موده يعنی درې ورځې درې شپې يا ددې نه زيات مسافه باندې غائب وی ③ يا شهود اصل په داسې بيمارۍ کې اخته وی چه په دغه بيمارۍ سره د قاضی په مجلس کې حاضری مشکل وی.

وَإِنَّمَا تَمَسُّ عِنْدَ عَجْزِ الْأَصْلِ او د ،،شهادة على الشهادة،، جواز د اړتيا په وجه دې. لِأَنَّ جَوَازَهَا لِلْحَاجَةِ، دليل دا دې چې د ،،شهادة على الشهادة،، اړتيا به راپيښيږی د شهود اصل د عاجز کيدلو په وخت. وَبِهَذِهِ الْأَشْيَاءِ يَتَحَقَّقُ الْعَجْزُ او په دې څيزونو سره عجز متحقق کيږی.

حل اللغة: ① الحاجة -ضرورت- ② تمس -پيښيږی- ③ الاشياء -جمع د شئ ،څيز- ④ يتحقق- ثابتيږی

تشريح:- دليل دادې چه ،،شهادة على الشهادة،، د اړتيا په بناء جائز ګرځولې شوې دې لکه څنګه چې په اول باب کې تير شوی دی او اړتيا هغه وخت راپيښيږی کله چې شهود اصل د ګواهۍ ور کاوه نه عاجز وی او په ذکر شوی درې واړه صورتونوکې د شهود اصل ګواهی ور کاوه سره عاجز کيدل متحقق دی نو چونکه په ذکر شوی درې واړه صورتونوکې د شهود اصل عاجز کيدلو په وجه د ،،شهادة على الشهادة،، اړتيا موجود دې ځکه به په دې درې واړه صورتونوکې ،،شهادة على الشهادة،، قبلولې شی.

وَإِنَّمَا اعْتَبَرْنَا السَّفَرَ لِأَنَّ الْمُعْجِزَ بُعْدُ الْمَسَافَةِ او موږ د سفر اعتبار ځکه اوکړو چه عاجز کوونکې د سفر لرې والې دې. وَمُدَّةُ السَّفَرِ بَعِيدَةٌ حُكْمًا او د سفر موده حکماً بعيد (لرې) ده. حَتَّى أُدِيرَ عَلَيْهَا عِدَّةٌ مِنَ الْأَحْكَامِ تردې چې په دې باندې د ډير حکمونو مدار دې فَكَذَا سَبِيلُ هَذَا الْحُكْمِ دغه ډول ددې حکم لاره ده.

حل اللغة: ① اعتبرنا- موږ معتبر کړو- ② المسافة- فاصله- ③ ادير -دارومدار- ④ سبيل- لاره

تشريح:- علامه مرغينانی ﷫ فرمائی چه د سفر د مودې اعتبار ځکه شوې دې چه د شهود اصل د قاضی په مجلس کې حاضريدلو اود ګواهۍ نه عاجز کوونکې شئ د مسافه لرې والې دې اود سفر موده حکماً لرې ده ځکه چې د بعد مسافه په وجه د سفر موده د ډيرو احکامو مدار ده لکه چې د سفر د مودې په اراده سره سفر کول په لمونځ کې قصر کوی په رمضان کې دافطار اجازت ورکوی د مسح موده د يو ورځ او يوې شپې نه زياتوی او درې ورځې او درې شپې کوی د قربانۍ او د جمعې وجوب ساقطوی د ښځې لپاره د محرم او ميړه نه بغير وتل حراموی نو د سفر په مسافه کې د عاجز کيدلو په وجه لکه څنګه چې دا احکام مرتب کيږی دغه ډول دا حکم يعنی د ،،شهادة

علی الشهادة،، جواز به هم مرتب وي.

> وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنْ كَانَ فِي مَكَانٍ اود ابويوسف رحمه الله نه نقل دی. که اصلي گواه په داسې مقام کې وي لَوْ غَدَا لِأَدَاءِ الشَّهَادَةِ که د شهادت ادا کاوه لپاره صباني روان شي. لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَبِيتَ فِي أَهْلِهِ نو دوی خپل کور کې شپه نشي تېرولی. صَحَّ الْإِشْهَادُ[1] نود هغوی لپاره پخپل شهادت باندې گواه کول جائز دی. إِحْيَاءً لِحُقُوقِ النَّاسِ چې د خلکو حقوق ژوندي شي

حل اللغة: ① غدوا حبا حاضرېدل شي -② يبيت-شپه تېره کړي -③ احياء-ژوندي کول-④ الناس-خلق

تشریح: - د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی. که شهود اصل په داسې مقام کې وي چه د شهادت ادا کاوه لپاره صباني روان شي په شپه کې خپل کور ته رارسيدل ممکن نه وي.نود حرج (او تکليف) لرې کاوه دپاره، اود خلگ وحقوق ژوندي کاوه لپاره ،،شهادة علی الشهادة،، جائز دي

> قَالُوا: الْأَوَّلُ أَحْسَنُ مشائخ فرمائي چه قول اول احسن وَالثَّانِي أَرْفَقُ او قول ثاني زيات آسان دي. وَبِهِ أَخَذَ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ هم دا فقيه ابوالليث رحمه الله اختيار کړي دي

حل اللغة: ① احسن-زيات ښه-② ارفق-آسان-③ اخذ-عمل کړي دي-④ الثاني- دوهم قول

تشریح: - مشائخ فرمائي چه رومبي قول يعني د سفر د مودې اعتبار احسن دي.خکه چې په دومره اندازه مسافه سره عجز متحقق کيږي.لکه چې په تيرو شوو احکامو کې ذکر کړي شو.نودا قول د حکم شرع موافق دي. او کوم قول چې د حکم شرع موافق وي.هغه به يقيناً احسن وي.خکه دا قول احسن دي.او دوهم قول يعني د ابويوسف رحمه الله قول زيات آسان دي.خکه چې په دې قول کې د خلگو لپاره زيانه آساني ده.هم دا فقيه ابوالليث او ډيرو مشائخو اختيار کړي دي.علامه بدرالدين عيني رحمه الله د ذخيره په حواله سره ليکلي دي چه د امام محمد رحمه الله نه نقل دي چه ،شهادة علی الشهادة،، په هرصورت کې جائز دي که شهود اصل د جمات په يو گوټ کې وي.او شهود فرع په بل گوټ کې وي.نو بياهم ،شهادة علی الشهادة،، جائز دي.

### د شهود فرع لپاره د شهود اصل د تعديل حکم

> قَالَ فَإِنْ عَدَّلَ شُهُودُ الْأَصْلِ شُهُودُ الْفَرْعِ جَازَ فرمائي که د شهود اصل شهود فرع تعديل اوکړو.نودا جائز دي. لِأَنَّهُمْ مِنْ أَهْلِ
> التَّزْكِيَةِ چې هغوی د تعديل اهل دي. وَكَذَا إِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ خکه اوهم دغه ډول که دوې (دوه) گواهانو گواهي
> ورکړله
> فَعَدَّلَ أَحَدُهُمَا الْآخَرَ يا يو د بل تعديل اوکړو نو صحيح ده. صَحَّ لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړو

تشریح: - صورت د مسئلې دادې که شهود فرع د شهود اصل په شهادت باندې شهادت ورکړو نو ددې څلور صورتونه دي ① که قاضي به يا د شهود اصل او شهود فرع دواړه فريقو د عادل کيدلو نه خبر وي. نو په دې صورت کې به قاضي بلا تامل (بلاتاخيره) فيصله ورکوي ② اوکه د دواړود عادل کيدو نه خبر نه وي.نو په دې صورت کې به د اصول او فروع د دواړو د عدالت په اړه کې به تحقيق کوي ③ اوکه د اصول د عادل کيدونه واقف وي.اود فروع نه خبر نه وي.نو په دې صورت کې به د فروع د عدالت په اړه کې تحقيق کوي ④ اوکه د فروع د عادل کيدو نه خبر وي.خود اصول نه خبر نه وي نو په دې صورت کې به د اصول د عدالت په اړه کې تحقيق

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في فتح القدير (۶/۵۲۸) والكفاية (۶/۵۲۹) والبحرالرائق (۷/۱۲۱) وردالمحتار (۴/۴۳۷) نقلاً من القول الراجح (۲/۱۴۲)-



کوي. که فروع د اصول تعديل اوکړو.يعني فروع اووئيل.چه اصول عادل دي.نود فروع په تعديل کاوه سره به د اصول عدالت ثابتيږي.په دې باندې ائمه اربعه متفق دي.

> غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّ فِيهِ مَنْفَعَةً مِنْ حَيْثُ الْقَضَاءِ بِشَهَادَتِهِ زياته نه زيات داده.چه په دې کې د تعديل کونکي نفع ده.په دې طريقه چې دده شهادت سره دقاضي فيصله معتلق شوې ده. لَكِنَّ الْعَدْلَ لَا يُتَّهَمُ بِمِثْلِهِ خو عادل په داسې قسمه خبرې سره نه متهم کيږي كَمَا لَا يُتَّهَمُ فِي شَهَادَةِ نَفْسِهِ لکه څنگه چې هغه پخپله ذاتي گواهۍ کې نه متهم کيږي.

حل اللغة: ① غاية -زيات نه زيات-② يتهم-تهمت لگولې شي-③ ردت-رد کړې شو -④ صاحب-ملگرې

تشریح: - دليل دادې.چه شهود فرع د مزکي جوړيدلو صلاحيت لري.نود هغوی تعديل او تزکيه په معتبر وي.دغه ډول که دوې (دوه) گواهانو گواهي ورکړله.مثلاً حامد او خالد په يوه مقدمه کې گواهي ورکړله.او په دوی دواړو کې د يو مثلاً د حامد عادل کيدل قاضي ته معلوم دي.اود خالد عادل کيدل معلوم نه دي.نو حامد خپل خان سره د خالد تعديل اوکړو.يعني حامد د خالد عادل کيدل اوخودل.نودا هم جائز دي.دليل وړاندې تير شوې دي.چه حامد يعني د کوم کس عادل کيدل چې قاضي ته معلوم دي.هغه د مزکي جوړيدلو صلاحيت لري.او کوم کس چې د مزکي جوړيدلو صلاحيت لري.دهغه تزکيه او تعديل کول صحيح کيږي.نود حامد تعديل کول به هم صحيح وي. ⁅ دلته کې دا اعتراض کيداې شي.چه حامد په تعديل کاوه کې متهم دې.خکه چې ددې تعديل نفع پخپله تعديل کونکي يعني حامد ته هم رسيږي.په دې طريقه چې دهغه د تعديل په وجه پخپله د هغه په شهادت فيصله ورکولې شي.کني که هغه تعديل نه وې کړې.نود هغه د انډيوالان شهادت به د غيرعادل کيدلو په وجه رد کيدلو. او دده د بواځې والي اود نصاب شهادت نه کيدلو په وجه به دده شهادت هم ردکيدلو خوکله چې هغه د خپل انډيوالان يعنې د خالد تعديل اوکړو.نو ددې په نتيجه کې پخپله د هغه شهادت هم قبول کړې شو.بهرحال په دې تعديل کې د تعديل کونکي چونکه يو ډول نفع موجود ده.په دې وجه تعديل کونکې يعنی حامد به پخپل تعديل کې متهم وي.او کوم کس چې پخپل تعديل کې متهم وي.د هغه تعديل کول معتبر نه وي.نود حامد تعديل کول هم معتبر کيدل پکار نه وو؟

خواب ددې خواب دادې.چه ،،احدالشاهدين،، يعني حامد دچا عادل کيدل چې قاضي ته معلوم دي.هغه چونکه عادل دې.او عادل سړې په داسې قسمه شبهاتو سره نه متهم کيږي.خکه به دې هم نه متهم کيږي.لکه څنگه چې پخپله د هغه په شهادت کې د نفعې دا شبه موجود ده.خو ددې باوجود متهم نه دې.د نفع شبه په دې طريقه ده.چه خلگ دا وئيلې شي.چه حامد ددې لپاره گواهي ورکړې ده.چه په خلگ وکې دا خبره مشهوره شي. چې قاضي دده خبره مني.اودده په شهادت باندې فيصله ورکوي.حالانکه په واقع (حقيقت) کې دده لپاره په دې مقدمه کې د شهادت هيڅ حق نه وو.نو لکه څنگه چې د نفع په دې احتمال سره حامد پخپله گواهۍ کې نه متهم کيږي.دغه ډول په تعديل کولو کې به هم نه متهم کيږي.

> وَكَيْفَ وَأَنَّ قَوْلَهُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ متهم کيږي به ولې؟ حالانکه د هغه قول د خپل ذات په حق کې مقبول دي. وَإِنْ رُدَّتْ شَهَادَةُ صَاحِبِهِ اود هغه د انډيوالان گواهي رد کړې شوه فَلَا تُهْمَةَ نوبيا هم هيڅ تهمت نشته.

تشریح: - علامه مرغيناني رحمه الله نوره ترقي کوي.فرمائي.چه تعديل کونکې گواه يعني حامد به په تعديل کولو کې ولې متهم کيږي؟ حالانکه په تعديل کاوه سره دده لپاره په حقيقت کې هيڅ داسې نفع نشته.کومه چې د تعديل په پرينښولو سره فوت کيږي.خکه چې دده قول يعني دده شهادت في نفسه مقبول دې.اگرچه د نصاب شهادت نه کيدلو په وجه په دې باندې فيصله نه ورکړې کيږي.اوکه دده د انډيوالان گواه گواهي ردکړې شوې وي.نو په دې صورت کې دا ممکن ده.چه يو بل عادل گواه حامد سره ملاؤ شي.او گواهي ورکړي.او بيا قاضي دوی دواړو په شهادت باندې فيصله ورکړي.اوگورئ چه د تعديل په پرينښولو سره د حامد (تعديل کونکي) هيڅ نفع فوت نشوه.اوهرکله چې په ترك تعديل سره هيڅ نفع فوت نشوه.نو په تعديل سره به هيڅ نفع نه حاصليږي.او هرکله چې

په تعدیل کاوه سره هیڅ نفع حاصل نشوه.نو حامد پخپل تعدیل کي متهم هم نشو.او هرکله چي متهم نشو.نو د هغه تعدیل کول به هم صحیح وی.

### د شهود اصل د تعدیل نه د شهود فرع د سکوت په وخت د ګواهۍ حکم

| |
|---|
| قَالَ وَإِنْ سَكَتُوا عَنْ تَعْدِيلِهِمْ جَازَ فرمائی.اوکه فروع د خپل اصول د تعدیل نه سکوت (خاموشي) اختیار کړله.نود فروع شهادت جائز دي. وَيَنْظُرُ الْقَاضِي فِي حَالِهِمْ او د اصول په حال کي به قاضی نظر کوی. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ ([1])اودا د ابویوسف ؒ په نیز دی. |

حل اللغة: ① سكتوا -چپ شی-② تعدیل-عادل کول-③ ينظر -نظر اوکړی-④ حال-حالت

تشریح:- ابو الحسین قدوری ؒ فرمائی.که قاضی د شهود فرع نه د شهود اصل د عدالت په سلسله کي پوښتنه اوکړو.خو شهود فرع د اصول د تعدیل کولونه سکوت اوکړو.یعنی دائي اونه وئیل.چه هغوی عادلان دی.او نه ئي دا اووئیل.چه هغه وی عادلان نه دی.یا ئي دا اووئیل.چه موږ ته د اصول عادل کیدل معلوم نه دی.یا ئي دا اووئیل.چه موږ به تاسو ته د اصول دعدالت په اړه کي هیڅ خبر نه درکوو.نو په دې صورتونوکي د امام ابویوسف ؒ په نیز د فروع شهادت جائز دې.خو قاضی به د اصول په اړه کي نظر کوی.یعنی د فروع نه علاوه د نورو اهل تزکیه حضراتو څخه به پوښتنه کوی.که د فروع نه علاوه نورو مزکینو حضراتو د اصول تعدیل اوکړو.نو قاضی به په دې شهادت باندې فیصله صادرکوی.اوکه تعدیل ئي اونکړو.نو قاضی به فیصله نه ورکوی.

| |
|---|
| وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا تُقْبَلُ او امام محمد ؒ فرمائی.چه د فروع شهادت به نه قبلیږی. لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ إِلَّا بِالْعَدَالَةِ، ځکه چي د عدالت نه بغیر هیڅ ګواهی نه کیږی. فَإِذَا لَمْ يَعْرِفُوهَا لَمْ يَنْقُلُوا الشَّهَادَةَ نو که فروع ته د اصول عدالت معلوم نه وی.نو دوی شهادت نه دې نقل کړې. فَلَا يُقْبَلُ نو شهادت به نه قبلیږی. |

حل اللغة: ① يعرفوا -پیژندلو-② ينقلوا-نقل کولو-③ يخفى-پټ پاتې کیږی-④ المأخوذ-واجب

تشریح:- حضرت امام محمد ؒ فرمائی.چه په دې صورت کي به د فروع شهادت د سره نه قبلیږی. دلیل دادې.چه د فرع شهادت ځکه قبلولي شی.چه دوی د اصول شهادت نقل کړې دې.او د اصول شهادت د اصول دعدالت نه بغیر شهادت نه وی.یعنی د عدالت نه بغیر هیڅ شهادت، شهادت نه وی.نوهرکله چي فروع ته د اصول د عدالت علم نشته.نود عدالت نه بغیر به د اصول شهادت نه ثابتیږی.او هرکله چي د اصول شهادت ثابت نشو.نود فروع د اړخه به د هغوی شهادت نقل کول هم متحقق نه وی.اوهرکله چي د فروع د اړخه د اصول شهادت نقل کول متحقق نشو.نود فروع شهادت به هم قبول نه وی.

| |
|---|
| وَلِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ الْمَأْخُوذَ عَلَيْهِمُ النَّقْلُ دُونَ التَّعْدِيلِ، د امام ابویوسف ؒ دلیل دادې.چه په فروع باندې صرف نقل کول واجب دی.تعدیل (واجب) نه دې. لِأَنَّهُ قَدْ يَخْفَى عَلَيْهِمْ، ځکه چي کله په فروع باندې د اصول عدالت پټ وی. وَإِذَا نَقَلُوا يَتَعَرَّفُ الْقَاضِي الْعَدَالَةَ اوهرکله چي دوی د اصول ګواهی نقل کړله.نو قاضی به د هغوی د عدالت معلومولو تکلیف پخپله کوی. كَمَا إِذَا حَضَرُوا بِأَنْفُسِهِمْ وَشَهِدُوا لکه که (مثلاً) اصول پخپله حاضر شوی وو.او ګواهی ئي ورکړې وه.(نود هغوی د عدالت معلومات به هم قاضی پخپله کوی). |

تشریح:- د حضرت امام ابویوسف ؒ دلیل دادې.چه په شهود فرع باندې صرف شهادت نقل کول لازم دی.او د خپل اصول تعدیل کول لازم نه دی.ځکه چي ډیر ځله فروع باندې د اصول عدالت پټ وی.نو هرکله چي فروع د قاضی په وړاندې هغه ګواهی نقل کړله.کومه ګواهی چي اصول په فروع باندې بار کړې وه.نو فروع د خپلې ذمه وارۍ نه

---

[1]) القول الراجح هوهذا قول أبی یوسف رحمه الله كذا فی فتح القدیر (٥٣٠/٦) والبحر الرائق (١٢٢/٧) ومجمع الأنهر(٢٩٦/٣) ، المحتار(١٤١) والكفاية (٥٣٠/٦) نقلاً عن القول الراجح (١٤٣/٢)_



خلاص شو.خو قاضی ته به د فروع نه علاوه د نورو مزکینو نه د اصولو د عدالت معلومات کاوه.تکلیف کول ضروری وی.که د دغه حضراتو د اصول تعدیل اوکړو.نو قاضی به په دغه شهادت باندې فیصله ورکوی.اوکه تعدیل ئي اونکړو.نو فیصله به نه ورکوی.لکه مثلا که اصول پخپله حاضر شوی وو.او شهادت ئي اداکړې وو.نو قاضی لپاره به د مزکینو نه ددوی حال معلومول ضروری وو.دغه ډول په ذکر شوی صورت کي به هم قاضی د اصول حال معلوموی.

### د شهود اصل د تعدیل نه د شهود فرع د سکوت په وخت د ګواهۍ حکم

| |
|---|
| قَالَ وَإِنْ أَنْكَرَ شُهُودُ الْأَصْلِ الشَّهَادَةَ اوکه شهود اصل د شهادت انکار اوکړو لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَةُ شُهُودِ الْفَرْعِ نود شهود فرع شهادت به نه قبلیږی. |

تشریح:- ابو الحسین قدوری ؒ فرمائی.چه اصول د شهادت انکار اوکړو.مثلاً دائي اووئیل.چه په دې مقدمه کي زموږ لپاره هیڅ شهادت نشته.بیا فروع د هغوی په شهادت باندې شهادت ورکړو.نود شهود فرع شهادت به نه قبلیږی.

| |
|---|
| لِأَنَّ التَّحْمِيلَ لَمْ يَثْبُتْ لِلتَّعَارُضِ بَيْنَ الْخَبَرَيْنِ دلیل دا دې چي په دوي (دوه) خبرونوکي د تعارض په وجه تحمیل ثابت نشو. وَهُوَ شَرْطٌ حالانکه تحمیل شرط دې. |

حل اللغة: ① تحمیل -بارکول-② التعارض-ټکراؤ-③ المرأة-ښځه-④ هات-راوله

تشریح:- دلیل دا دې چي د شهود اصل د شهادت نه انکار کول په حقیقت کي د تحمیل یعنی پخپله ګواهۍ باندې د ګواه کاوه نه انکار کول دی.حالانکه د شهود فرع شهادت قبلیدلو لپاره تحمیل شرط دې.نوهرکله چي د قبولیت شرط اونه موندې شو.نود هغوی شهادت به هم قبول نه وی.

علامه مرغینانی ؒ دا دلیل په دې طریقه بیان کړې دې.چه هرکله اصول د شهادت نه انکار اوکړو.یعنی دا ئي اووئیل.چه په دې مقدمه کي موږ شاهد نه یو.او هرکله چي موږ پخپله شاهدان نه یو.نود بل چا د ګواه کاوه څه سوال پیدا کیږی.ګویا شهود اصل د تحمیل انکار اوکړو.او شهود فرع د هغوی په شهادت باندې شهادت ورکړو.ګویا دا ئي اووئیل.چه تحمیل اوموندې شو.یعنی اصول موږ په ګواهۍ باندې ګواه کړی یو.اودا ښکاره ده.چه په دې دواړه خبروکي تعارض دې.اودا هم مسلم ده.چه د تعارض په وجه تحمیل نه ثابتیږی.نوهرکله چي د تعارض په وجه تحمیل نه ثابتیږی.نود شهود فرع شهادت به هم نه قبلیږی.ځکه چي د شهود فرع شهادت قبلیدلو لپاره تحمیل شرط دې.

### د شهود اصل په ګواهۍ باندې د شهود فرع د ګواهۍ حکم

| |
|---|
| وَإِذَا شَهِدَ رَجُلَانِ عَلَى شَهَادَةِ رَجُلَيْنِ عَلَى فُلَانَةَ بِنْتِ فُلَانٍ الْفُلَانِيَّةِ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ اوکه دوي (دوه) سړو د دوي (دوه) سړو په ګواهۍ باندې په فلانه بنت فلان فلانیه باندې د یوزر درهمو ګواهی ورکړله. وَقَالَا أَخْبَرَانَا أَنَّهُمَا يَعْرِفَانِهَا او دواړه فرعی ګواهانو اووئیل.چه موږ ته اصلی ګواهانو خبر راکړې دې.چه هغوی دا ښځه پیژني فَجَاءَ بِامْرَأَةٍ وَقَالَا: لَا نَدْرِي أَهِيَ هَذِهِ أَمْ لَا نو مدعی یوه ښځه راوستله.او فروع اووئیل.موږ نه پیژنو.چه دا هم هغه ښځه ده.او که هغه ښځه نه ده. فَإِنَّهُ يُقَالُ لِلْمُدَّعِي هَاتِ شَاهِدَيْنِ يَشْهَدَانِ أَنَّهَا فُلَانَةُ نو مدعی ته به وئیلې شی.چه ته داسې دوې (دوه) ګواهان راوله.چه د[illegible]ی دا ګواهی ورکړی.چه دا ښځه هم هغه فلانۍ بنت فلانۍ ده. |

تشریح:- صورت د مسئلې دادې.چه شهود فرع د شهود اصل په شهادت باندې شهادت ورکړو.چه فلانه بنت فلان فلانیه.مثلاً زینب بنت حامد قرشی النسل ښځه باندې د فلانی مدعی یو زر درهم دی.او شهود فرع دا هم اووئیل.چه شهود اصل موږ ته دا خبر راکړې دې.چه هغوی یعنی شهود اصل دغه ښځه یعنی زینب بنت حامد قرشیه ښځه پیژني.بیا مدعی یوه ښځه راوستله او وې وئیل.چه زینب بنت حامد قریشیه داده.خو شهود فرع اووئیل.چه موږ ته معلومه نه ده.چه زینب بنت حامد هم داده.اوکه دا نه ده.په داسې صورت کي به مدعی ته وئیلې

شي.چه زياتي نور داسې دوې (دوه) ګواهان پيش کړي.چه هغوی ددې خبرې شهادت ورکړي.چه زينب بنت حامد قريشيه هم دا ښځه ده.نو ددې ګواهئ نه روسته به په دې ښځه باندې د يو زردرهمو فيصله ورکولې شي.

> إِلَّا أَنَّ الشَّهَادَةَ عَلَى الْمَعْرِفَةِ بِالنِّسْبَةِ قَدْ تَحَقَّقَتْ دليل دا دې چې په نسب پيژوندلو باندې ګواهي متحقق شوه. وَالْمُدَّعِي يَدَّعِي الْحَقَّ عَلَى الْحَاضِرَةِ او مدعی د حق دعوه کوی.په حاضره باندې. وَلَعَلَّهَا غَيْرُهَا فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْرِيفِهَا بِتِلْكَ النِّسْبَةِ حالانکه ممکن ده.چه دا د هغې نه علاوه وی.نو نسب سره ددې پيژندل ضروري دي.

حل اللغة: ① المعرفة -پيژندګلو-② الحاضرة-موجوده-③ لعل-شايد-④ لابد-ضروري ده

تشريح:- دليل دا دې چې د يوزر درهمو شهادت دداسې ښځې خلاف پيش شو.کومه چې په نسب سره معلومه شوه.يعني زينب بنت حامدقريشيه کومه چې د نسب په اعتبار سره معلومه ده.په دې باندې شهود فرع د يو زر درهمو شهادت ورکړې دې.خومدعی چې کومه ښځه ګرفتاره کړې راوستې ده.اوبه دې باندې د يوزر درهمو دعوه کوی.ددې په اړه کښې دا معلومه نه ده.چه زينب بنت حامد قريشيه هم داده. کيداې شی.چه دا زينب بنت حامد قريشيه نه وی.بلکه ددې نه علاوه وی.او مدعی هسې بيسه دا نيولې راوستې ده.په دې وجه دا خبره ضروري ده.چه مدعی داسې دوې (دوه) ګواهان پيش کړي.چه هغوی په دې باندې ګواهي ورکړي.چه زينب بنت حامد قريشيه هم داده.چه معلومه شي.چه په شهادت کې ذکر شوې نسب هم ددې ښځې دې.

> وَنَظِيرُهُ هَذَا إِذَا تَحَمَّلُوا الشَّهَادَةَ بِبَيْعِ مَحْدُودَةٍ او ددې مثال دادې.چه کله ګواهان دداسې محدود شئ د خرڅولو ګواه شو. بِذِكْرِ حُدُودِهَا وَشَهِدُوا عَلَى الْمُشْتَرِي چې د هغې حدود اربعه ذکر کړې شوی دی.او هغوی په مشتری باندې ګواهي ورکړله. لَا بُدَّ مِنْ آخَرَيْنِ يَشْهَدَانِ عَلَى أَنَّ الْمَحْدُودَةَ بِهَا فِي يَدِ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ نو نور دوې (دوه) ګواهان به دا ګواهي ورکوی.چه د کوم حدود اربعه ذکر کړې شوی دی.هغه د مدعی عليه په قبضه کې دې.

حل اللغة: ① تحملوا -بار کړی-② بيع-خرڅول-③ المشتري-اخستونکې-④ يد-قبضه

تشريح:- علامه مرغيناني ﷺ فرمائي.چه د متن ددې مسئلې مثال دادې.چه يوسړي دعوه اوکړله.چه خالد حامد ته خپل کور چې د هغې حدود اربعه دادی.خرڅ کړو.او حامد مشتری په هغې قبضه هم کړې ده.او ماته چونکه حق شفع حاصل دې.په دې وجه دې ذکرشوې کور ماته راکړې شی.خو مشتری انکار اوکړو.اووې ونيل.چه زما په قبضه کې په ذکرشوی حدودو سره هيڅ کور نشته.نودې مدعی يعني شفيع دوې (دوه) ګواهان پيش کړل.هغوی ګواهي ورکړله.چه حامد د خالد نه په فلاني ښار کې په دې حدود اربعه سره يو کور اخستې دې.خو معين طور باندې هغه کور نه پيژنو.نو مدعی يعني شفيع ته به وئيلې شی.چه جناب دوې (دوه) ګواهان نور پيش کړه.چه هغوی په دې خبره باندې ګواهي ورکړي.چه کوم حدود په دعوه او شهادت کې ذکر کړې شوی دی.ددې مدعی عليه يعني د مشتری په قبضه کې هم په دغه حدودو سره کور موجود دې.ځکه چې ددې نه روسته قاضی د شفيع لپاره څه فيصله کولې شی.لکه څنګه چې په دې مسئله کې د زياتي دوې (دوه) ګواهانو اړتيا ځکه دې.چه هغوی په دې باندې ګواهي ورکړي.چه د مشتری په قبضه کې هم هغه کور موجود دې.کوم کور چې په دعوه او په شهادت على الشراء کې موجود دې.دغه ډول د متن په مسئله کې به زياتي نور دوې (دوه) ګواهان په دې خبره باندې ګواهي ورکوی.چه مدعی کومه ښځه راوستې ده.دا هم هغه ښځه ده.د کومې نسب چې په دعوه او په شهادت فرع کې بيان کړې شوې وو.

> وَكَذَا إِذَا أَنْكَرَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ او هم دغه ډول کله چې مدعی عليه ددې خبرې انکار اوکړو. أَنَّ الْحُدُودَ الْمَذْكُورَةَ فِي الشَّهَادَةِ حُدُودُ مَا فِي يَدِهِ چې کوم حدود په ګواهئ کې بيان کړې شوی دی.هم هغه حدود دده په قبضه کې دی.

تشريح:- دغه ډول که يوسړی دعوه اوکړله.چه د فلانی سړی په قبضه کې په دې حدودو سره زما کور دې.هغه په ناحق طريقه قبضه کړې دې.ددې مدعی ګواهانو هم دا ګواهي ورکړله.چه کوم حدود اربعه په دعوه کې ذکر کړې شوی دی.ددې حدونو کور د مدعی ملك دې.اود مدعی عليه په قبضه کې په ناحق طريقه دې.خو مدعی عليه



اووئيل.چه کوم کور زما په قبضه کې دې.د هغې حدود اربعه هغه نه دی.کوم چې ګواهانو ذکر کړی دی.بلکه د هغې حدود اربعه جلا دی.غرض داچه کوم حدود په شهادت کې ذکر شو.مدعی عليه د دغه حدونو والا کور باندې د خپلې قبضې کيدلو انکار اوکړو.نو مدعی ته به وئيلې شی.چه جناب دوې (دوه) ګواهان نور پيش کړه.چه هغوی په دې خبره باندې ګواهي ورکړي.چه د مدعی عليه په قبضه کې هم ددغه حدونو والا کور دې.کوم حدود اربعه چې په رومبی شهادت کې ذکر دی.دا مسئله هم د متن د مسئلې مثال دې.يعني لکه څنګه چې د متن په مسئله کې د مدعی نه د نورو دوې (دوه) ګواهانو مطالبه کړې شوې وه.دغه ډول دلته کې هم د مدعی نه د نورو دوې (دوه) ګواهانو مطالبه کړې شوې ده.

### د..شهادة على الشهادة..پشان د قاضي د خط حکم

> قَالَ وَكَذَا كِتَابُ الْقَاضِي إِلَى الْقَاضِي فرمايي وهم دغه ډول خط د يوقاضی بل قاضی ته لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ ځکه چې دا (خط) د شهادة على الشهادة په معنی کې دې

تشريح:- ابو الحسين قدوری ﷺ فرمائي.چه هم دا حکم هغه وخت دې.کله چې يو قاضی بل قاضی ته خط ليکلې وی.صورت د هغې دادې.چه د يو ښار قاضی د بل ښار قاضی ته اوليکل.چه،، دوې (دوه) عادل ګواهانو زما په وړاندې ګواهي ورکړې ده.چه د فلان بن فلان مدعی يو زر درهم په زينب بنت حامد قريشيه باندې في الحال واجب الاداء دی.نو تاسو په دې ښځه باندې دا حکم صادر کړئ،،کله چې دا خط مکتوب اليه قاضی ته موصول شو.نو مدعی يوه ښځه حاضره کړله.چه دا زينب بنت حامد قريشيه ده.خو دغه ښځې د زينب بنت حامد قريشيه کيدلو نه انکار اوکړو.نو مدعی ته به وئيلې شی.چه دوې (دوه) ګواهان داسې پيش کړه.چه هغوی په دې باندې ګواهي ورکړي.چه دا ښځه هم هغه زينب بنت حامد قريشيه ده.کوم چې د کاتب قاضی په خط کې ذکر دی.چه د فيصله کاوه په وخت د مکتوب اليه قاضی لپاره دې ښځې اړخ ته اشاره کول ممکن وی.

دليل دادې.چه د کاتب قاضی خط د ،،شهادة على الشهادة،،په معنی کې دې.ګويا د اصل ګواهانو قاضی کاتب فرع جوړ شو.اود هغوی ګواهي مکتوب اليه قاضی ته اورسوله.

> إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ لِكَمَالِ دِيَانَتِهِ خودا چې قاضی دخپل کمال ديانت وَوُفُورِ وِلَايَتِهِ اود تمام ولايت په وجه يَنْفَرِدُ بِالنَّقْلِ د اصل ګواهئ په نقل کولوکې متفرد دې.

حل اللغة: ① کمال-پوره-② ديانة-دياندارى-③ ولاية-تصرف-④ ينفرد-خانله کيږي

تشريح:- خوکه دا اعتراض اوکړې شی.چه قاضی کاتب هرکله چې د شاهد فرع په مرتبه کې دې.نو کاتب قاضی دوې (دوه) سړي کيدل پکار دی.ځکه چې د شهود فرع لپاره کم ازکم دوې (دوه) کيدل ضروري دی؟ خواب:نو ددې ځواب علامه مرغيناني ﷺ داسې ورکړې دې.چه د شهود فرع بې شکه چې دوې (دوه) کيدل ضروري دی.خو کاتب قاضی د خپل ديانت کامله او د ولايت تامه عامه په وجه د شهود اصل ګواهي نقل کولوکې يواځې کافي دې.د دوو هيڅ اړتيا نشته.

### په نسبت عامه د قاضي د خط اود..شهادة على الشهادة..حکم

> وَلَوْ قَالُوا فِي هَذَيْنِ الْبَابَيْنِ التَّمِيمِيَّةَ لَمْ يَجُزْ وکه په دې دواړه صورتونو کې په،،شهادة على الشهادة،، او په،،کتاب القاضي الى القاضي،، کې تميمه اووئيلې.نو جائز نه دی. حَتَّى يَنْسُبُوهَا إِلَى فَخِذِهَا وَهِيَ الْقَبِيلَةُ الْخَاصَّةُ تردې چې دا ښځه د هغې فخذ اړخ ته منسوب کړي.فخذ خاصه قبيله ده.

حل اللغة: ① البابين -قاضی کيدل د ده-② ينسبوا-نسبت اوکړی-③ فخذ-خاص قبيله--

تشريح:- په،،شهادة على الشهادة،، او په،،کتاب القاضي الى القاضي،،کې د قرضدراې ښځې نسبت بيانولوکې اووئيلې شو.چه زينب بنت حامد تميميه (بنوتيمم يوه ډيره لويه قبيله ده) باندې د فلان بن فلان يو زر درهم پور دی.نودا جائز نه دی.البته که دغه ښځه د هغې خاص قبيلې اړخ ته منسوب کړله.يعنی د هغې خاص خاندان اړخ

ته ئې منسوب کړله.نو جائز ده.

وَهٰذَالِأَنَّ التَّعْرِيفَ لَابُدَّمِنْهُ فِي هٰذَا،وَلَايَحْصُلُ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْعَامَّةِ،اوداعدم جواز ځکه دې.چه په دې کې شناخت ضروري دې.او شناخت په نسبتِ عامه سره نه حاصلیږي. وَهِيَ عَامَّةٌ إِلَى بَنِي تَمِيمٍ لِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَايُحْصَوْنَ،او تمیمه نسبتِ عامه دې.بنوتمیم ارخ ته نسبت کاوه سره.ځکه چې دا داسې قوم دې.چه دا نشی شمارلې کیدلې. وَيَحْصُلُ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْفَخِذِ لِأَنَّهَاخَاصَّةٌ او فخذ ارخ ته نسبت کاوه سره شناخت حاصلیږي.ځکه چې دا نسبتِ خاصه دې.

تشریح:- ددې وجه داده.چه نسبت داسې کول پکار دی.چه په هغې کې د سړي شناخت اوشي.اودا هم مسلم ده.چه د سړي شناخت په عام نسبت سره نه حاصلیږي.لکه تمیمه، او تمیمه عام نسبت دې.کوم چې بنو تمیم ارخ ته منسوب دې.ځکه چې بنو تمیم لویه قبیله ده او د دې بې شماره افراد دی.نو په دې قوم کې معلومه نه ده چې څومره ښځې به داسې وی.چه د هغوی نومونه اود هغوی د پلارانو نومونه به متفق وی.نو صرف په تمیمه ونیلو سره د یوې ښځې شناخت نه کیږي.البته که ښځه د هغې فخذ (فخذ په بنو تمیم کښې یوښاخ دې) یعنی خاص قبیله ارخ ته منسوب کړې شوه.نو چونکه دا نسبت خاص دې.ځکه به په دې سره شناخت حاصلیږي. لکه آفریدی یو قوم دې خو بیا په دې کې مختلف شاخونه دی نو که یوکس گواهي ورکړي چې د زید په بکرآفریدی باندې لس زره روپۍ دی نودا به نه قبلیږي اوکه په آفریدو کې خاص قبیله یاده کړي نوپه دې صورت کې به د ده گواهي قبلولې شي.

وَقِيلَ الْفَرْغَانِيَّةُ نِسْبَةٌ عَامَّةٌ وَالْأُوزْجَنْدِيَّةُ خَاصَّةٌ،او ونیلی شوي دی.چه فرغانیه نسبتِ عامه او جندیه نسبتِ خاصه دې. وَقِيلَ السَّمَرْقَنْدِيَّةُ وَالْبُخَارِيَّةُ عَامَّةٌ و ونیلی شوي دی.چه سمرقند او بخاریه نسبتِ عامه دې. وَقِيلَ إِلَى السِّكَّةِ الصَّغِيرَةِ خَاصَّةٌ،وَإِلَى الْمَحَلَّةِ الْكَبِيرَةِ وَالْمِصْرِعَامَّةٌ او ونیلی شوي دی.چه وړوکې شان کوڅې ارخ ته نسبت کول نسبتِ خاصه دې.او غټې محلې او ښار ارخ ته نسبت عامه دې.

تشریح:- بعض حضرات فرمائی.چه صوبه فرغانه ارخ ته نسبت کول نسبتِ عامه دې.او ددې صوبې یو ښار اوزجند ارخ ته نسبت کول نسبتِ خاصه دې.خودا ډیره پخوانۍ خبره ده.گنی نن سهار اوزجند پخپله لوئې ښار دې.اوزجند ارخ ته نسبت سره هم په پوره شناخت حاصلیدلو کې شك ( او شبه) ده.بعض حضرات فرمائی.چه سمرقند یا بخارا ارخ ته نسبت کول نسبتِ عامه دې.او ددې یوې محلې ارخ ته نسبتِ کول نسبتِ خاصه دې.او بعض حضرات فرمائی.چه وړې کوڅې ارخ ته نسبت کول نسبتِ خاصه دې.او لوئې محلې او ښار ارخ تـه نسبت کول نسبتِ عامه دې

ثُمَّ التَّعْرِيفُ وَإِنْ كَانَ يَتِمُّ بِذِكْرِ الْجَدِّ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ (1) بیا د امام ابوحنیفه اود امام محمد رحمهما الله په نیز شناخت ( پیژندګلو) اګرچه د نیکه په ذکر سره پوره کیږي. خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ عَلَى ظَاهِرِالرِّوَايَاتِ،په خلاف د ابویوسف رحمه الله د ظاهر روایاتو موافق. فَذِكْرُالْفَخِذِ يَقُومُ مَقَامَ الْجَدِّ خود فخذ ذكر كول د نیکه قائم مقام دې. لِأَنَّهُ اسْمُ الْجَدِّ الْأَعْلَى فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الْجَدِّ الْأَدْنَى،وَاللّٰهُ أَعْلَمُ ځکه چې فخذ د جد اعلی نوم دې.نو دا به د جدّ ادنی په مرتبه کې راکوزولې شي.

حل اللغة: ① التعریف -شناخت-② الجد-نیکه-③منزلة-مرتبه-④يتم-پوره کیږي

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د امام ابویوسف رحمه الله په نیز دچا تعارف کاوه لپاره د پلار ذکر کافی دې.د نیکه د ذکر هیڅ ارتیا نشته.اود طرفینو رحمهما الله په نیز د نیکه ذکر کول هم ضروري دې.خود فخذ یعنی د خاص خاندان ذکر هم د نیکه د ذکر قائم مقام دې.ځکه چې فخذ هم د جد اعلی په نوم باندې وی.نودا به د جدادنی( نیکه) په مرتبه کې راکوزولې شي.

(1) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في البحر الرائق (١٢٥\٧) وملتقى الأبحر(٢٩٧\٣) نقلاً عن القول الراجح (١٤٤\٢)-



## د دروغجن ګواه د سزاحکم

فصل قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: شَاهِدُالزُّورِ أُشَهِّرُهُ فِي السُّوقِ وَلَاأُعَزِّرُهُ (1) امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه د دروغو ګواهی ورکونکی به بازارکې تشهیر کوم.او دده تعزیر به نه کوم.

حل اللغة: ① شاهدالزور -د دروغو ګواه-② اشهره تشهیرا-مشهور کول-③سوق-بازار-④اعزره تعزیرا-سخت وهل

تشریح:- د دروغو ګواهی ئې په جلا فصل کې ځکه ذکر کړې ده.چه ددې مخصوص احکام دی.او په آخرکې ئې ځکه ذکرکړله.چه اصل خود رښتیاؤ ګواهی ده.د دروغو ګواهی داده.چه ګواه ددې خبرې اقرار اوکړي.چه ما د دروغو ګواهی ورکړې ده.یا مثلاً یوسړي ګواهی ورکړې ده.چه خالد قتل کړې شوې دې.بیا اوکتلی شو.چه خالد ژوندې دې.نودا ګواهی به هم ددرغو وی.غرض داچه ګواه پخپله اقرار اوکړي .یا په یقین سره په یو خارجی دلیل سره دده دروغجن کیدل معلوم شی.بهرحال امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه زه به د دروغو ګواه په بازارکې تشهیر کوم.او هغه به رسوا کوم.اود هغه تعزیر به نه کوم.یعنی هغه به په کوړو نه وهم.

وَقَالَا: نُوجِعُهُ ضَرْبًا وَنَحْبِسُهُ وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه موږ به دې وهو.او په قیدخانه کې به ئې قید کوو.هم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې.

حل اللغة: ① توجیعه ایجاعا -تکلیف رسول-② نحبسه،حبسا-قید کول-③سوط-کوړه-④سخم، تسخیما -مخ تورول

تشریح:- او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه هغه به وهلې هم شی.او په قیدخانه کې به هم اچولې شی.هم دا قول د امام شافعی، امام مالك، امام احمد اود عامو عالمانو رحمهم الله دې.

لَهُمَامَارُوِيَ عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه أَنَّهُ ضَرَبَ شَاهِدَالزُّورِأَرْبَعِينَ سَوْطًا وَسَخَّمَ وَجْهَهُ (2) د صاحبینو رحمهما الله دلیل هغه دې.کوم چې د حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دې.چه هغوی د دروغو ګواه څلوېښت کوړې اووهلو.اود هغه مخ ئې تورکړو.

تشریح:- دلیل هغه اثر دې.کوم چې د فاروق اعظم رضي الله عنه نه نقل دې.چه هغوی د دروغو ګواه ته څلوېښت کوړې اولګولې.او بیا ئې د هغه مخ تورکړو.دا اثر د تعزیر په مشروع کیدلو باندې دلالت کوی.اود ولیدبن ابی مالك نه نقل دی.چه حضرت عمر رضي الله عنه خپلو د شام عاملانو تـه اولیکل.چه د دروغو ګواه دې څلوېښت کوړې اووهلې شی.دهغه مخ دې تورکړې شی.اود هغه سر دې اوخرولې شی.اود ډیر وخته پورې دې په قیدخانه کې اوساتلې شی.ددې اثر نه هم د دروغجن ګواه تعزیر ثابتیږي.اود حضرت عمر رضي الله عنه جلیل القدر اولوالعزم صحابی تقلید زموږ لپاره حجت دې.

اعتراض:په دې استدلال باندې دا اعتراض کیدلې شی.چه د حضرت عمر رضي الله عنه په دې اثر کې دمخ تورولو ذکر دې.حالانکه صاحبین رحمهما الله ددې د جواز قائل نه دی.او په تعزیر کې د کوړو تعداد څلوېښتو ته نه رسیږي. یعنی په تعزیر کې زیات نه زیات یوکم څلوېښت کوړې لګیدلې شی.حالانکه په دې اثر کې د څلوېښتو کوړو ذکر دې.

ځواب:ددې ځواب دادې.چه د حضرت عمر رضي الله عنه په اثر سره مقصود د امام صاحب رحمه الله د قول نفی ده.ځکه چې امام صاحب رحمه الله د تعزیر قائل نه دې.بهرحال دا اثر په دې باندې دلالت کوی.چه د دروغوګواهۍ په تعزیر کې نفس ضرب (وهل) ثابت دی.

وَلِأَنَّ هٰذِهِ كَبِيرَةٌ او ځکه چې د دروغ ګواهی ورکول کبیره ګناه ده. يَتَعَدَّى ضَرَرُهَا إِلَى الْعِبَادِ چې ددې ضرر بنده ګانو ارخ ته متعدی کیږي. وَلَيْسَ فِيهَا حَدٌّ مُقَدَّرٌ او په دې کې هیڅ حد مقرر نه دې فَيُعَزَّرُ نود هغه تعزیر به کولې شي.

(1) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا ردالمحتار(٤٠\٤٤) والبحرالرائق (١٢٥\٧) نقلاً عن القول الراجح (١٤٤\٢)-

(2) أخرجه إبن أبي شيبة في مصنفه (نصب:١٨٥\٤)_

حل اللغة: ① ضرر-نقصان-② انزجار-منع كيدل-③ زجر-منع كول--

تشریح:- د صاحبينو رحمهما الله دوهم دليل دادي چه د دروغو گواهي كبيره گناه ده. د حديث نه هم ثابت دی. چې د الله رسول ﷺ اوفرمائيل چه آيا زه تاسو د اكبركبائرو نه خبر كړم. موږ اووئيل ضرور (خبر كړئ) ای د الله رسوله ﷺ. هغوی اوفرمائيل الله تعالى سره څوك شريكول، د مورپلار نافرماني كول، هغوی ډډه (تكيه) لگولې وه. چه فوراً كيناستلو او وې فرمائيل واوړئ دروغ خبره يا دروغ گواهي هغوی ﷺ دا پيوسته فرمائيل. راوی وائي چه ما پخپل زړه كې اووئيل چه شايد دوی به خاموش نشي. او په يو روايت كې دادي چه ما پخپل زړه كې اووئيل چه كاش دوی خاموش شی. بهرحال د دروغو د گواهئ په نصوص سره كبيره گناه كيدل ثابت دی. او كبيره گناه هم داسې چې ددې ضرر بنده گانو ارخ ته متعدی كيږي. ځكه چې د دروغو گواهئ سره د خلگو مالونه اود هغوی حقوق تلف كيږي. او په دې گناه كبيره باندې په شريعت كې چونكه هيڅ حد نه دې بيان كړې شوې. اود خلگو فساد او ضرر لرې كول هم ضروری دی. په دې وجه به د دروغو د گواه ضرور تعزير كولې شي.

وَلَهُ أَنَّ شُرَيْحًا كَانَ يُشَهِّرُ وَلَا يَضْرِبُ، اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي چه قاضي شريح به د دروغو د گواه تشهير كولو. اونه به ئې وهلو وَلِأَنَّ الِانْزِجَارَ يَحْصُلُ بِالتَّشْهِيرِ فَيُكْتَفَى بِهِ، وَالضَّرْبُ اوځكه چې د دروغ گواهئ نه منع كيدل په تشهير سره حاصليږي. نو په دې به اكتفاء كولې شي. وَإِنْ كَانَ مُبَالَغَةً فِي الزَّجْرِ او وهل اگرچه په زجر كې مبالغه ده. وَلَكِنَّهُ يَقَعُ مَانِعًا عَنِ الرُّجُوعِ خودا به د رجوع نه مانع وی. فَوَجَبَ التَّخْفِيفُ نَظَرًا إِلَى هَذَا الْوَجْهِ نو دې امله ارخ ته په نظر كاوه سره تخفيف واجب دې.

تشریح:- د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله ① دليل دادي چه قاضي شريح به د دروغو د گواه تشهير كولو. خوهغه به ئې نه وهلو. اود قاضي شريح دا عمل د فاروق اعظم، حضرت علي، اود صحابه كرامو رضی الله عنهم د يو لوئې جماعت په زمانه كې وو. ښكاره ده چه په صحابه كرامو به د شريح دا عمل مخفي نه وی پاتې شوې. خو ددې باوجود حضرات صحابه كرامو چوپوالې اختيار كړې ده. نودا د اجماع قائم مقام شوه. گويا د دروغو گواه تعزير نه كول د صحابو په اجماع سره ثابت دی. ② دوهم دليل دادي چه د دروغو د گواه د دروغو د گواهئ نه بندول مقصود دی. اودا مقصد صرف په تشهير سره هم حاصليږي. نوهر كله چې داعمل په تشهير سره حاصليږي. نو هم په دې به اكتفاء كولې شي. د وهلو ټ كاوه هيڅ ارتيا نشته. وهل ټكول او تعزير كول اگرچه په دې مقصد كې ډير مددگار دې خو يو نقصان هم دې. نقصان دادي چه كله د دروغو گواه د وهلو ټ كاوه تصور كوی. نود وهلو ټ كاوه د يرې به د دروغو اقرار نه كوی. اود رجوع نه كاوه په صورت كې به د خلگو حقوق ضائع كيږي. نو ددې نقصان په لحاظ سره تخفيف يعني تشهير باندې اكتفاء كول واجب دی.

وَحَدِيثُ عُمَرَ رضی الله عنه مَحْمُولٌ عَلَى السِّيَاسَةِ او د عمر رضی الله عنه حديث په سياست باندې محمول دې. بِدَلَالَةِ التَّبْلِيغِ إِلَى الْأَرْبَعِينَ وَالتَّسْخِيمِ په دې دليل سره د كوړو تعداد څلويښت پورې اورسولو. او مخ ئې تور كړو.

حل اللغة: ① التسخيم-مخ تورول-② تفسير-طريقه-③ سوقيا-بازاری-③ العصر-مازيگر

تشریح:- او پاتې شو حديث د عمر رضی الله عنه، نو هغه په سياست باندې محمول دې. يعني حضرت عمر رضی الله عنه د انتظامی مصلحت په لحاظ سره د دروغو د گواه تعزير اوكړو. اوپه دې باندې ① قرينه داده. چه حضرت عمر رضی الله عنه شاهد زور ته څلويښت كوړې اولگولې. حالانكه څلويښت كوړې د غلام او وينځې حد قذف دې. اود تعذير په طور باندې د هر يو حد په مقدار كوړې لگول ممنوع دی. لكه چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دی. كه يو داسې سړی ته د حد په اندازه كوړې اولگولې شوې په چاچه حد واجب نه دې. نو دغه كوړې وهونكې به ظالم وی. نو ددې وعيد باوجود د حضرت عمر رضی الله عنه د دروغو گواه ته څلويښت كوړې لگول د تعزير په طور نه وو. بلكه د انتظامی په لحاظ وو. ② دويمه قرينه داده. چه مخ تورول هم تعزير كې داخل نه دی. نودا به هم سياست باندې محمول وی.

ثُمَّ تَفْسِيرُ التَّشْهِيرِ مَنْقُولٌ عَنْ شُرَيْحٍ رَحِمَهُ اللهُ بيا د تشهير كيفيت د حضرت شريح نه داسې منقول دې. فَإِنَّهُ كَانَ يَبْعَثُهُ إِلَى



سُوقِهِ إِنْ كَانَ سُوقِيًّا، وَإِلَى قَوْمِهِ إِنْ كَانَ غَيْرَ سُوقِيٍّ بَعْدَ الْعَصْرِ أَجْمَعَ مَا كَانُوا، چې قاضي شريح به د دروغ گواه د بازاری كه هغه به بازاری وو. اود هغه په قوم كې به ئې ليكلو. كه هغه به بازاری نه وو. وَيَقُولُ: إِنَّ شُرَيْحًا يُقْرِئُكُمُ السَّلَامَ وَيَقُولُ: إِنَّا وَجَدْنَا هَذَا شَاهِدَ زُورٍ فَاحْذَرُوهُ وَحَذِّرُوا النَّاسَ مِنْهُ او بوتلونكى به وئيل چه شريح تاسو ته سلام وائي. او وائي چه موږ دې د دروغو گواه اوموندلو. نو دده نه ښه بچ شئ. او خلگ دده نه بچ كړئ.

تشریح:- علامه مرغيناني رحمه الله د حضرت شريح رحمه الله په حواله سره د تشهير كيفيت دا بيان كړې دې. چه د دروغو د گواه تعلق كه د بازار سره وو. نو قاضي شريح به هغه بازار ته ليگلو. گني د هغه په قوم كې به ئې ليگلو. اود مازيگر نه روسته به ئې ليگلو. چه د خلگو به د تولو نه زياته مجمع وه. يا به ئې داسې خانې ته ليگلو. كوم خانې به چې خلگ په كثير تعداد كې راجمع وو. او بوتلونكى به دا وئيل. چې شريح تاسو خلگو ته سلام وائي. اودا وائي. چې موږ دا سړې دروغجن موندلې دې. نو تاسو دده نه بچ اوسئ. او نور خلگ هم دده نه بچ ساتئ.

وَذَكَرَ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يُشَهَّرُ عِنْدَهُمَا أَيْضًا الائمه سرخسي رحمه الله ذكر كړی دی. چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز به هم تشهير كولې شي. وَالتَّعْزِيرُ وَالْحَبْسُ عَلَى قَدْرِ مَا يَرَاهُ الْقَاضِي عِنْدَهُمَا، او شمس اود صاحبينو رحمهما الله په نيز تعزير او په قيدخانه كې ساتل به دهغې مطابق كولې شي. كوم چې قاضي مناسب اوگڼړی. وَكَيْفِيَّةُ التَّعْزِيرِ ذَكَرْنَاهُ فِي الْحُدُودِ اود تعزير كيفيت هغه دې. كوم چې موږ په كتاب الحدود كې ذكر كړې دې.

تشریح:- شمس الائمه سرخسي رحمه الله فرمائي. چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز به هم د دروغجن گواه تشهير كولې شي. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز تعزير او په قيد كې ساتل به د قاضي په صوابديد (او رائې) باندې موقوف وی. اود تعزير كيفيت هغه دې. كوم چې موږ د ،، كتاب الحدود ،، په فصل فی التعزير كې بيان كړې دې.

## د دوې (دوه) گواهانو د دروغو دگواهئ اقرار او د دوی د سزا حكم

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: شَاهِدَانِ أَقَرَّا أَنَّهُمَا شَهِدَا بِزُورٍ لَمْ يُضْرَبَا او په جامع صغير كې دی. كه دوې (دوه) گواهانو اقرار اوكړو. چه دوی د دروغو گواهي وركړې ده. نو دوی به نشی وهلې. وَقَالَا يُعَزَّرَانِ و صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه د دوی تعزير به كولې شي. وَفَائِدَتُهُ أَنَّ شَاهِدَ الزُّورِ فِي حَقِّ مَا ذَكَرْنَا مِنَ الْحُكْمِ او ددې فائده داده. چه د دروغو گواه ددې حكم په حق كې كوم چې موږ ذكر كړو. هُوَ الْمُقِرُّ عَلَى نَفْسِهِ بِذَلِكَ، هغه د خپل ذات په حق كې ددې اقرار كونكې دې. فَأَمَّا لَا طَرِيقَ إِلَى إِثْبَاتِ ذَلِكَ بِالْبَيِّنَةِ بهرحال د بينه په ذريعه ددې د ثابتولو هيڅ لاره نشته. لِأَنَّهُ نَفْيٌ لِلشَّهَادَةِ وَالْبَيِّنَاتُ لِلْإِثْبَاتِ، لكه چې دا خو د گواهئ نفی ده. اوگواهيانې د اثبات لپاره وی. وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ وَإِلَيْهِ الْمَرْجِعُ وَالْمَآبُ حو الله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب

تشریح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه په جامع صغير كې دا مسئله داسې ده. كه دوې (دوه) گواهانو ددې اقرار اوكړو. چه موږ د دروغو گواهي وركړې ده. نود امام صاحب رحمه الله په نيز به دوی نشی وهلې. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به د تعزير په طور هغوی ته د وهلو سزا وركولې شي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د جامع صغير ددې واضح عبارت فائده داده. چه د شاهد دروغ صرف دده په اقرار سره ثابتيدې شي. د شاهد دروغ د بينه او شهادت په ذريعه نشي ثابتيدلې. او وجه ددې داده. چه د شاهد دروغجن كيدل ثابتول په حقيقت كې د شهادت نفی ده. او بينات او گواهيانې د يو شئ د ثابتولو لپاره وی. د نفی كاوه لپاره نه وی. په دې وجه د شاهد زور دروغجن كيدل صرف دده په اقرار سره ثابتيدې شي. د شهادت وغيره په ذريعه دا نشی ثابتيدلې. والله اعلم،

# كتاب الرجوع عن الشهادات

(دا) كتاب د شهادتونو نه د گرځيدلو (په بيان كې) دې.

تشریح:- رجوع عن الشهادات د شهادت نه روسته واقع كيږي. نوځكه ئې كتاب الرجوع عن الشهادات د كتاب

الشهادات نه روسته ذکر کړلو

## د فیصلې نه وړاندې د ګواهانو د ګواهۍ نه د رجوع کولو حکم

قَالَ إِذَا رَجَعَ الشُّهُودُ عَنْ شَهَادَتِهِمْ قَبْلَ الْحُكْمِ بِهَا سَقَطَتْ که په ګواهۍ سره دحکم کاوه نه وړاندې ګواهانو دخپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله نو ګواهي به ساقطیږي.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې چه د ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع کول د قاضي د فیصلې کاوه نه وړاندې وي یا به روسته وي. که وړاندې وي نو بالاتفاق به شهادت ساقطیږي. یعنی په دې شهادت به مدعی علیه باندې هیڅ حق نشي ثابتولې.

لِأَنَّ الْحَقَّ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالْقَضَاءِ وَالْقَاضِي لَا يَقْضِي بِكَلَامٍ مُتَنَاقِضٍ دلیل دا دې چې حق په قضاء سره ثابتیږي. او قاضي په متناقض کلام باندې فیصله نه کوي.

تشریح:- دلیل دادې چه حق د قاضي په حکم سره ثابتیږي. او دلته کې اوسه پورې د قاضي هیڅ حکم نشته. او روسته هم قاضي هیڅ حکم نشي کولې. ځکه چې د ګواهانو په کلام کې تناقض دې. په دې طریقه چې ګواهانو مخکې پخپله ګواهي ورکړله. او بیا ئې پخپله د هغې تردید اوکړو. او په کوم کلام کې چې تناقض وي. قاضي ته د هغې مطابق د حکم کاوه اجازت نه وي. نوهرکله چې قاضي ته د ګواهانو په کلام کې د تناقض په وجه د فیصلې کاوه اجازت نشته. نو په مدعی علیه به هیڅ حق نه ثابتیږي.

وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمَا په دې ګواهانو به تاوان هم واجب نه وي. لِأَنَّهُمَا مَا أَتْلَفَا شَيْئًا لَا عَلَى الْمُدَّعِي وَلَا عَلَى الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ او ځکه چې هغوی د مدعی یا مدعی علیه هیڅ شی نه دې تلف (ضائع) کړې.

حل اللغة: ① اتلف -ضائع کړل-② الصدق-رښتیا-③ یفسخ-فسخ کیږي-④ الضمان-تاوان

تشریح:- اوپه ګواهانو باندې ضمان نشته ځکه چې د شهادت نه د رجوع کاوه په وجه په ګواهانو باندې هیڅ قسمه تاوان هم نه واجبیږي. ځکه چې تاوان د چا څه شی تلف کاوه په وجه واجبیږي. حالانکه دلته کې هیڅ شی تلف کیدل اونه موندې شو. ځکه چې ګواهانو نه د مدعی څه شی تلف کړې دې. اونه ئې د مدعی علیه څه شی تلف کړې دې. د مدعی علیه څه شی تلف کول خو ښکاره دې. اود مدعی څه شی نه تلف کول ځکه دي. که شهادت واقعةً حق وو. او ګواهانو د قاضي د حکم نه وړاندې رجوع اوکړله. نودا ګواهان کتمان شهادت کونکي وي. اوپه کتمان شهادت کونکي باندې هیڅ تاوان نه واجبیږي. نو په دې ګواهانو به هم د رجوع عن الشهادة په وجه هیڅ تاوان نه واجبیږي.

فَإِنْ حَكَمَ بِشَهَادَتِهِمْ ثُمَّ رَجَعُوا لَمْ يُفْسَخِ الْحُكْمُ او که قاضي د هغوی په ګواهۍ باندې حکم ورکړو. بیا هغوی رجوع اوکړله. نود قاضي حکم به نه فسخ کیږي لِأَنَّ آخِرَ كَلَامِهِمْ يُنَاقِضُ أَوَّلَهُ ځکه چې د ګواهانو آخري کلام د هغوی د رومبي کلام معارض دي. فَلَا يَنْقُضُ الْحُكْمُ بِالتَّنَاقُضِ نود تناقض په وجه به حکم نه ماتیږي.

تشریح:- اوکه قاضي د ګواهانو په په ګواهۍ باندې فیصله کړې ده. او ددې نه روسته ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع کړې ده. نود قاضي فیصله به کالعدم نه وي. بلکه علی حاله به برقرار وي.

(١) دلیل دادې چه دګواهانو آخري کلام ددوی د رومبي کلام معارض او مناقض دې. اوکلام مناقض عقلاً او شرعاً ساقط الاعتبار وي. او په ساقط الاعتبار کلام سره حکم نه ماتیږي. نود ګواهانو په آخر کلام یعنی رجوع عن الشهادة سره به هم د قاضي حکم نه ماتیږي. او کلام مناقض ساقط الاعتبار ځکه دې. که ددې اعتبار اوکړې شي. نو تسلسل به لازمیږي. په دې طریقه چې هرکله ګواهانو د خپل شهادت نه رجوع اوکړله. نو ددې اعتبار کاوه په وجه د قاضي حکم مات شو. بیا که هغوی د خپلې رجوع نه رجوع اوکړي. یعنی شهادت پاته اوساتي. نو چونکه ددې اعتبار به هم وي. ځکه به د قاضي حکم پاته کیږي. بیا که دوی د خپلې رجوع د رجوع نه هم رجوع اوکړي. نو بیا ددې به هم اعتبار کولې شي. اود قاضي حکم به ماتیږي. نو چونکه یو کلام ته په بل باندې ترجیح نشته. په دې وجه به دا تسلسل ترقیامته برابر روان وي. حالانکه تسلسل محال دې. او کوم شی چې محال ته مستلزم وي. هغه



پخپله محال وي. ځکه به د کلام مناقض معتبر کیدل محال وي.

وَلِأَنَّهُ فِي الدَّلَالَةِ عَلَى الصِّدْقِ مِثْلُ الْأَوَّلِ او ځکه چې په رښتیاؤ باندې دلالت کولوکې دوهم کلام د رومبي پشان دې. وَقَدْ تَرَجَّحَ الْأَوَّلُ بِاتِّصَالِ الْقَضَاءِ بِهِ حالانکه د رومبي کلام سره د قضاء متصل کیدلو په وجه راجح شو.

تشریح:- دوهم دلیل دادې چه د ګواهانو دوهم کلام یعنی رجوع عن الشهادة په صداقت باندې دلالت کاوه کې د رومبي کلام پشان دې. ګویا دواړه کلامونه مساوي دي. خو چونکه رومبي کلام سره د قاضي حکم متصل شوې دې. ځکه به رومبې کلام راجح وي. اوهرکله چې رومبې کلام راجح دې. نو مرجوح یعنی د کلام ثاني په وجه به د قاضي حکم کالعدم نه وي.

وَعَلَيْهِمْ ضَمَانُ او په دې ګواهانو به د هغه شي تاوان واجب وي. مَا أَتْلَفُوهُ بِشَهَادَتِهِمْ کوم چې هغوی په خپلې ګواهۍ سره تلف کړو. لِإِقْرَارِهِمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ بِسَبَبِ الضَّمَانِ ځکه چې هغوی پخپل ذات باندې د ضمان د سبب اقرار کړې دې.

تشریح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه په دې صورت کې چې ګواهانو په خپلې ګواهۍ سره څه هم تلف کړي دي. یعنی ددوی په ګواهۍ سره چې د مدعی علیه کوم مال تلف شوې دې. د هغې تاوان به پخپله دې ګواهانو باندې واجب وي. ځکه چې هم دوی پخپل ذات باندې ددې اقرار کړې دې. چه مدعی علیه کوم مال مدعی ته ورکړې دې. هغه ئې چونکه زموږ په شهادت باندې ورکړې دې. ځکه د رجوع عن الشهادة په وجه د هغې تلف کونکي شو. حاصل داچه ګواهانو د ضمان د سبب اقرار کړې دې. اوهرکله چې د ضمان د سبب اقرار ئې کړې دې. یعنی د خپل شهادت نه ئې رجوع کړې ده. نو په دوی به ضمان واجب وي. که دا اووئیلې شي. چه د مدعی علیه د مال تلف کیدلو علت د قاضي حکم دې. یعنی که قاضي حکم نه کولې. نومدعی علیه دا مال به ولې تلف کیدلو. نو تاوان په قاضي باندې واجبیدل پکار دي. په ګواهانو واجبیدل پکار نه دې. نو ددې ځواب دادې. چه دمال تلف کاوه علت اګرچه د قاضي حکم دې. خو ددې فیصلې سبب ګواهانو پیدا کړې دې. یعنی که ګواهانو ګواهي نه ورکولې. نو قاضي به هیڅ کله فیصله نه وه کړې. ګویا قاضي د ګواهانو د اړخه په فیصله کاوه باندې مجبور او مضطر وو. او په داسې موقع حکم، سبب پیدا کونکي اړخ ته منسوب کیږي. نو ددې مال تلف کول به هم ګواهانو اړخ ته منسوب کولې شي. اوهرکله چې د مال دا تلف کول ګواهانو اړخ ته منسوب دي. نو ضمان به ګواهانو اړخ ته منسوب کولې شي. او هرکله چې د مال دا تلف کول ګواهانو اړخ ته منسوب دي. نو ضمان به ګواهانو باندې واجب وي. په قاضي به واجب نه وي. او ددې مثال داسې دې. لکه مثلاً یوکس په لاره کې ځاه اوکنستلو. او په هغې کې یو د لارې تیریدونکې پریوتلو. او مړشو. نودا ځاه کنستونکې چونکه مسبب دې. یعنی د هغه د هلاکت سبب پیداکونکې دې. په دې وجه به د هغې تاوان یعنی دیت هم په دغه ځاه کنستونکي باندې واجب وي.

وَالتَّنَاقُضُ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ او تناقض د اقرار صحیح کیدلو لپاره مانع نه دې. وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى اودا به موږ روسته بیان کړو.

تشریح:- پاتې شو دا اعتراض چې د رجوع عن الشهادة په وجه هرکله د ګواهانو په کلام کې تناقض دې. او متناقض کلام ساقط الاعتبار دې. نو په دوی ددې رجوع په وجه ضمان واجبیدل پکار نه وو.

ددې ځواب دادې. چه د ګواهانو په کلام کې بلاشبه تناقض دې. خودا تناقض د اقرار د صحت لپاره مانع نه دې. یعنی د ګواهانو پخپل ذات باندې اقرار کول د تناقض باوجود صحیح دې. انشاءالله دا به روسته بیانوو.

## د حاکم په موجودګۍ کښې د ګواهۍ نه رجوع ضروري ده

وَلَا يَصِحُّ الرُّجُوعُ إِلَّا بِحَضْرَةِ الْحَاكِمِ او رجوع صحیح نه ده. خود حاکم په موجودګۍ کې،

تشریح:- ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه د ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع کول به صرف د قاضي په مجلس کې معتبر وي. قاضي که هم هغه وي. د چا په وړاندې ئې چې ګواهي ورکړې وه. اوکه د هغه نه علاوه څوک دوهم قاضي وي. بهرحال د رجوع عن الشهادت لپاره هم د قاضي مجلس شرط دې.

لِأَنَّهُ فَسْخٌ لِلشَّهَادَةِ دلیل دا دي چې رجوع کول د شهادت فسخ ده فَيَخْتَصُّ بِمَا تَخْتَصُّ بِهِ الشَّهَادَةُ مِنَ الْمَجْلِسِ. نو هغه مجلس سره به مختص وي. کوم سره چې شهادت مختص دي. وَهُوَ مَجْلِسُ الْقَاضِي أَيِّ قَاضٍ كَانَ اوهغه د قاضي مجلس دي. که هرڅوك قاضي وي.

**تشریح:-** دلیل دادې. چه د شهادت نه رجوع کول په حقیقت کې شهادت فسخ کول دي. نو رجوع عن الشهادت به هم هغه مجلس سره مختص وي. کوم سره چې شهادت مختص دې. اودا وړاندې تیر شوی دی. چه شهادت د قاضي مجلس سره مختص دې. نو رجوع عن الشهادت به هم د قاضي مجلس سره مختص وي.

❓اعتراض٭ دلته یو اعتراض دې. هغه داچه رجوع عن الشهادت د قاضي مجلس سره مختص کول پکار نه دي. ځکه چې رجوع عن الشهادت دګواهانو خپل ځان باندې د مدعی علیه د مال د تاوان اقرار دې. ځکه چې ګواهانو د دروغو ګواهۍ په ذریعه د هغه مال تلف کړې دې. اود مال د تاوان اقرار چونکه د قاضي مجلس سره مختص نه وي. ځکه به رجوع عن الشهادت هم د قاضي مجلس سره مختص نه وي.

ځواب٭ ددې ځواب دادې. چې د شهادت په نتیجه کې چې د مدعی په مدعی علیه باندې کوم استحقاق ثابت شوې دې. هغه به هغه وخته پورې نه مرتفع کیږي. کومه پورې چې حجت پاته وي. نو ددې استحقاق لرې کاوه لپاره د حجت رفع ضروري ده. اود قاضي د مجلس نه علاوه کې د شهادت نه رجوع کول به حجت رفع کول نه وي. ځکه چې د قاضي د مجلس نه په علاوه کې شهادت حجت نه وي. نو هرکله چې د قاضي د مجلس نه په علاوه کې شهادت حجت نه دې. نود قاضي دمجلس نه په علاوه کې به حجت رفع کول هم صحیح نه وي. اوهرکله چې د قاضي دمجلس نه په علاوه کې به حجت رفع کول صحیح نه دي. نود قاضي دمجلس نه په غیر کې به رجوع عن الشهادت هم صحیح نه وي. او پاتې شو د ګواهانو اقرار بالضمان، نو هغه د حجت د رفع په ضمن کې ثابتیږي. نو اقرار بالضمان به د رفع حجت د تابع ځنې وي. او ددې به هیڅ اعتبار نه وي.

دوهم ځواب دادې. چې کوم شی په ابتداء کې شرط وي. هغه په بقاء کې هم شرط وي. مثلاً د مبیع موجود کیدل په ابتداء کې د بیع د صحت لپاره شرط دې. او ددې صحت بقاء د فسخ لپاره شرط دې. نوهم دغه ډول د قاضي مجلس چونکه په ابتداء کې د صحت شهادت لپاره شرط دې. په دې وجه د قاضي د مجلس بقاء به د فسخ شهادت او د رجوع عن الشهادت لپاره هم شرط وي.

وَلِأَنَّ الرُّجُوعَ تَوْبَةٌ اوځکه چې رجوع عن الشهادت توبه ده. وَالتَّوْبَةُ عَلَى حَسَبِ الْجِنَايَةِ او توبه د جنایت (جرم) مطابق وي. فَالسِّرُّ بِالسِّرِّ وَالْإِعْلَانُ بِالْإِعْلَانِ نود خفیه ګناه توبه خفیه ده. اود علانیه ګناه توبه علانیه ده.

**حل اللغة:** ① الجناية -ګناه- ② الرجوع -واپس کیدل- ③ السر -پټ- ④ الاعلان -ښکاره کول

**تشریح:-** د رجوع عن الشهادت د قاضي مجلس سره د مختص کیدلو دوهم دلیل دادې. چه رجوع عن الشهادت د جنایت کذب نه توبه ده. او توبه د جنایت مطابق وي. یعنی د کومې درجې چې جنایت وي. د هغه درجې توبه معتبر وي. که جنایت په پټه وي. نو توبه به هم په پټه کافي وي. اوکه جنایت په ښکاره وي. نو توبه به هم علانیه (او په ښکاره) ضروري وي. او د دروغو ګواهي چونکه د قاضي په مجلس کې جنایت او جرم دې. په دې وجه ددې نه توبه یعنی رجوع عن الشهادت به هم د قاضي مجلس سره مقید او مختص وي.

وَإِذَا لَمْ يَصِحَّ الرُّجُوعُ فِي غَيْرِ مَجْلِسِ الْقَاضِي اوهرکله د قاضي د مجلس نه په علاوه کې رجوع کول صحیح نه دي. فَلَوِ ادَّعَى الْمَشْهُودُ عَلَيْهِ رُجُوعَهُمَا نو که مشهود علیه د دواړه ګواهانو د رجوع دعوه اوکړله. وَأَرَادَ يَمِينَهُمَا لَا يَحْلِفَانِ او ددوی دواړو نه ئې دقسم اراده اوکړله. نود ګواهانو ځخه به قسم نه اخستلې کیږي. وَكَذَا لَا تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ عَلَيْهِمَا اوهم دغه ډول ددوی خلاف به د مدعی علیه بینه نه قبلیږي.

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله فرماني. چه د قاضي مجلس نه علاوه کې چونکه د شهادت نه رجوع کول صحیح نه دي. په دې وجه که مشهود علیه (مدعی علیه) دعوه اوکړله. چه ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع کړې ده. او پخپله



دې دعوه باندې ئې بینه پیش کړل. یا ئې بینه پیش نکړې شو. خو مدعی علیه د ګواهانو نه قسم اخستل اوغوښتل. نو قاضي به ددې ګواهانو خلاف نه د مدعی علیه بینه قبلوي. اونه به د ګواهانو نه قسم اخلي.

لِأَنَّهُ ادَّعَى رُجُوعًا بَاطِلًا دلیل دا دې چې هغه د رجوع باطل دعوه کړې ده. حَتَّى لَوْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ تردې که مدعی علیه بینه قائم کړل. أَنَّهُ رَجَعَ عِنْدَ قَاضٍ كَذَا چې هغه د فلاني قاضي په وړاندې رجوع کړې ده. وَضَمَّنَهُ الْمَالَ تُقْبَلُ او فلاني قاضي په ده باندې دمال تاوان لګولې دې. نودا بینه به قبول وي. لِأَنَّ السَّبَبَ صَحِيحٌ ځکه چې سبب صحیح دې.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې بینه او قسم دواړه په دعوه صحیحه باندې مرتب کیږي. حالانکه د قاضي د مجلس نه په غیر کې د رجوع دعوه باطل ده. نوهرکله چې د رجوع دعوه باطل ده. نو په دې به نه بینه مرتب کیږي. اونه به قسم مرتب کیږي. تردې که مدعی علیه دا بینه قائم کړل. چه ګواهانو پخپله ګواهۍ سره د فلاني قاضي په وړاندې رجوع کړې ده. او هغه قاضي زما لپاره د مال تاوان را کاوه حکم ورکړې وو. خو تر اوسه پورې ګواهانو ماته هیڅ نه دې راکړې. نو قاضي به دا بینه قبلوي. ځکه چې په دې صورت کې د بینه قبلولو سبب یعنی د قاضي په مجلس کې د رجوع دعوه صحیح ده. او هرکله چې دعوه صحیح ده. نو په دې به د بینه ترتب هم صحیح وي.

## د حاکم د فیصلې نه روسته د ګواهانو د رجوع حکم

وَإِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ بِمَالٍ فرماني. اوکه دوې (دوه) ګواهانو دمال ګواهي ورکړله. فَحَكَمَ الْحَاكِمُ بِهِ نو حاکم ددې ګواهۍ موافق حکم ورکړو ثُمَّ رَجَعَا ضَمِنَا الْمَالَ لِلْمَشْهُودِ عَلَيْهِ بیا دوی رجوع اوکړله. نو دواړه ګواهانو به دمشهودعلیه لپاره دمال ضامن وي.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې. که دوې (دوه) ګواهانو د یوسړي خلاف دمال ګواهي ورکړله. بیا قاضي ددې ګواهۍ مطابق حکم ورکړو. او مدعی ته ئې مال واپس ورکړو. بیا دواړه ګواهانو د ګواهۍ نه رجوع اوکړله. نو دواړه ګواهان به د مدعی علیه لپاره دمال ضامن وي. امام مالك او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دي. او د امام شافعي رحمه الله صحیح قول هم دادې.

لِأَنَّ التَّسْبِيبَ عَلَى وَجْهِ التَّعَدِّي سَبَبُ الضَّمَانِ دلیل دا دې چې د تعدي (ظلم) په طور باندې سبب پیدا کول د ضمان سبب دې. كَحَافِرِ الْبِئْرِ لکه څاه کنستونکې. وَقَدْ سَبَّبَا لِلْإِتْلَافِ تَعَدِّيًا او دې دواړه ګواهانو هم په ناحقه دمال تلف (ضائع) کاوه سبب پیدا کړې دې.

**حل اللغة:** ① وجه -طریقه- ② التعدی -ظلم- ③ حافر -کنستونکې- ④ البئر -کوهې

**تشریح:-** دلیل دادې. چه په ناحقه او په ظلم باندې سبب پیدا کول د ضمان سبب وي. یعنی که یوکس په ناحقه اود ظلم په طور سبب پیدا کړي. نو حکم هم دغه سبب اړخ ته منسوب کیږي. او ضمان په سبب پیدا کونکي باندې واجبیږي. په مباشر او په مرتکب د فعل باندې نه واجبیږي. مثلاً که یوسړي په یو محکه یالاره کې څاه اوکنستلو. او په هغې کې څوك سړې یا حیوان (څاروې) پریوتلو. او مړ شو. نود هغې ضمان به په کوهي کنستونکي باندې واجب وي. ځکه چې څاه کنستونکې ظلم کونکې دې. نوکه د مړکیدونکي تلف کیدل دده اړخ ته منسوب کړې شي. یعنی دا اووئیلې شي. چه هم ده تلف کړې دې. او هرکله چې ده تلف کړې دې. نود تلف ضمان به هم په ده واجب وي. هم دغه ډول په ذکرشوې مسئله کې د مدعی علیه مال په ناحقه اود ظلم په طور د تلف کاوه سبب دې دواړه ګواهانو پیدا کړې دې. یعنی دې دواړه ګواهانو پخپله ګواهۍ سره د مدعی علیه مال تلف کړې دې. اود ګواهۍ نه ئې په رجوع کاوه سره ددې خبرې هم اقرار کړې دې. چه مونږه دواړو د مدعی علیه مال په ناحقه اود ظلم په طور تلف کړې دې. نوهرکله چې دواړه ګواهانو په ناحقه او په ظلم باندې د مدعی علیه مال تلف کاوه سبب پیدا کړې دې. نو ضمان به هم په دې ګواهانو باندې واجب وي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَضْمَنَانِ او امام شافعي رحمه الله فرماني. چه ګواهان به ضامن نه وي. لِأَنَّهُ لَا عِبْرَةَ لِلتَّسْبِيبِ عِنْدَ وُجُودِ الْمُبَاشَرَةِ ځکه چې د ارتکاب موندلو په وخت د سبب پیدا اعتبار نشته.

تشریح:- البته د امام شافعي ﷫ يو ضعيف قول دادي.چه په گواه به ضمان واجب نه وي.بلکه په قاضي به وي. د قول ضعيف دليل دادي.چه د فعل مرتکب اود مباشر په موجودگۍ کي د سبب پيدا کاوه اعتبار نه کيږي.يعني هرکله چي د فعل ارتکاب کونکي حقيقتاً موجود وي.نو حکم هم دي مرتکب اړخ ته منسوب کولي شي.مسبب اړخ ته به نشي منسوب کولي.نوهرکله چي دا خبره ده.نود مدعی عليه مال تلف کونکي چونکه حقيقتاً قاضي دي.چاچه حکم ورکړي دي.اوگواه صرف ددي حکم سبب دي.نو قاضي کوم چي مال تلف کونکي دي.هرکله چي پخپله موجود دي.نو ضمان به په قاضي باندي واجب وي.او په گواهانو به واجب نه وي.لکه مثلاً حامد خالد ته اووئيل.چه ته د عارف لاس کټ کړه.نود حامد په راپارولو سره (او راضي کولو) خالد د عارف لاس کټ کړو.نو په دي جرم کي به خالد مرتکب فعل گرفتارولي شي.او د حامد راپارونکي به هيڅ اعتبار نه کيږي.

قلنا: تعذر ايجاب الضمان على المباشر موږ خواب ورکوو.چه په مرتکب باندي تاوان واجبول متعذر دي. وهو القاضي او مرتکب قاضي دي. لانه كالملجأ الى القضاء خکه چي قاضي په فيصله باندي د مجبور پشان وو.

حل اللغة: ① تعذر -گران شي-② الملجا-مجبور-③ ايجاب-واجبول-④ تقلد-قبلول

تشریح:- زموږ د اړخه ددي خواب دادي.چه مباشر يعني قاضي باندي ضمان واجبول متعذر او ناممکن دي. خکه چي قاضي په فيصله کاوه باندي گويا مجبور دي.خکه چي د قاضي په نيز هرکله د گواهانو عدالت ثابت شي نو په هغه باندي فيصله کول فرض کيږي.ترڅو که قاضي پخپل خان باندي فيصله کول فرض اونگڼي.نو کافر به شي.او که فرض گڼي.خو په فيصله کاوه کي هسي بيسه ( بلا وجه) تاخير کوي.نو گناهگار او فاسق به وي.او دي به معزولولي شي.او تعزير به ورکولي شي.بهرحال هرکله چي قاضي په فيصله کاوه کي دمجبور پشان دي.نو هغه به په فيصله کاوه کي معذور وي.او په معذور باني هيڅ قسمه تاوان نه واجبيږي. نو په قاضي به هم د مدعی عليه لپاره د مال تاوان نه واجبيږي.دلته په عبارت کي قاضي ته،، کالملجا،،( د مجبور پشان) خکه ونيلي شوى دي.چه په حقيقت کي مجبور او مضطر هغه کس ته وائي.چاته چي د دنياوي سزا يره وي.او دلته کي قاضي داسي نه دي.خکه چي قاضي ته د اُخروي عقوبت( او سزا) يره وي.يعني قاضي د اُخروي عقوبت په يره فوراً په فيصله کاوه باندي مجبوره وي.گني هغه ته په دي اړه کي د دنياوي عقوبت هيڅ يره نه لاحق کيږي.

وفي ايجابه صرف الناس عن تقلده او په قاضي باندي تاوان واجبولو کي د خلگو د قضاء عهده قبلولو نه اعراض لازميږي. وتعذر استيفاءه من المدعي اود مدعی هم نه تاوان وصولول متعذر دی. لان الحكم ماض فاعتبر التسبب خکه چي حکم نافذ شوي دي.نود سبب پيدا کاوه اعتبار به کولي شي.

تشریح:- قاضي باندي د ضمان نه واجبولو دويمه وجه داده.که په قاضي باندي ضمان واجبيدلو.نو خلگ به ددي مصيبت په کتلو سره د عهدهٔ قضاء قبلولو نه خان ساتي.او هرکله چي واړه خلگ د عهدهٔ قضاء قبلولو نه اعراض کوي.نودا ضرر به عام شي. اود قاضي نه جوړيدلو په وجه به د خلگو حقوق ضائع شي نو ددي عام ضرر نه د بچ کيدو لپاره خاص ضرر يعني قاضي باندي ضمان نه واجبول به برداشت کولي شي.ددي نه هم معلومه شوه.چه په قاضي به ضمان نه واجبيږي.علامه مرغيناني ﷫ فرماني.چه ذکر شوي تاوان هم د مدعی نه وصولول ناممکن دي.خکه چي د قاضي فيصله ناطق او نافذ شوي ده.نود گواهانو په رجوع کاوه سره به هغه فيصله کالعدم او فسخ نه وي.خکه چي د گواهانو د رجوع کاوه خبر( کلام ثاني)، د هغوی د وړمبي کلام يعني د شهادت ادا کاوه نه راجح او غوره نه دي.او هرکله چي د گواهانو کلام ثاني ( د رجوع کاوه خبر)، د هغوی د وړمبي کلام ( د شهادت اداکولو) نه راجح ( او غوره) نه دي.نود کلام اول يعني د شهادت په بنا (بنياد) باندي چي قاضي کومه فيصله ورکړي وه.هغه به نه ماتيږي.او هرکله چي د قاضي فيصله ماته نشوه.نو په مدعی به د هغه مال واپس کول هم واجب نه وي.کوم مال چي هغه ته د قاضي د فيصلي په نتيجه کي وصول شوي وو.حاصل دا چي هرکله چي نه په مباشر ( قاضي) باندي تاوان واجبول ممکن دی.اونه د مدعی نه وصولول ممکن دی. نو د ظلم او ناحق طور باندي د سبب پيدا کاوه اعتبار به کولي شي.يعني گواهان،چاچه د گواهۍ نه رجوع کاوه سره ظلم کړي دي.اود ضمان



سبب جوړ شوي دي.په هغوی به ضمان واجب وي.

وانما يضمنان او دواړه گواهان به هغه وخت ضامن وي. اذا قبض المدعي المال دينا كان او عينا،کله چي مدعی په مال باندي قبضه کړي وي.که مال دين وي.اوکه عين وي. لان الاتلاف به يتحقق خکه چي په قبضه کاوه سره تلف کول متحقق کيږي.

حل اللغة: ① دين -قرض② -عين-موجود څيز-③ الاتلاف-هلاکول-④ يتحقق-ثابتيږي.

تشریح:- په دي عبارت سره علامه مرغيناني ﷫ فرماني.چه دواړه گواهان به مدعی عليه لپاره هغه وخت ضامن وي.کله چي مدعی په هغه مال باندي قبضه کړي وي.د کوم مال چي قاضي د هغوی په گواهۍ باندي فيصله ورکړي وه.نو هغه مال که د دين د اقسامو څخه وي ( لکه سره زر، سپين زر).اوکه د عين د اقسامو څخه وي ( لکه کپړه وغيره).

دليل دادي.چه گواهان خکه ضامن کيږي.چه هغوی د خپلي گواهۍ نه رجوع کاوه سره د مدعی عليه مال تلف کړي دي.اودا تلف کول هغه وخت متحقق کيږي.کله چي مدعی په دي مال باندي قبضه کړي وي.د قبضه کاوه نه وړاندي تلف کول نه متحقق کيږي.نو هرکله چي د قبضه کاوه نه وړاندي تلف کول نه متحقق کيږي.بلکه د قبضه کاوه نه روسته متحقق کيږي.نو گواه به هغه وخت ضامن وي.کله چي مدعی په مال باندي قبضه کړي وي.

ولانه لا مماثلة بين اخذ العين والزام الدين اوخکه چي په عين اخستلو او دين لازمولو کي هيڅ مماثلت نشته.

تشریح:- دوهم دليل دادي.چه د ضمان بنا (بنياد) په مماثلت دي.يعني ضمان د هغه شي واجبيږي.چه د هغي مثل موجود وي.حالانکه د مدعی د قبضه کاوه نه وړاندي هيڅ مماثلت نشته.په دي طريقه چي گواهانو پخپله گواهۍ سره په مدعی عليه باندي کوم مال لازم کړي دي.هغه دين ( ما وجب في الذمه) دي.نوکه د مدعی د قبضه کاوه نه وړاندي گواهان ضامن جوړ کړي شو.نو مدعی عليه چي د گواهانو څه وصولوی.هغه به عين ( متعين) وي.گويا مدعی عليه د گواهانو نه د دين ( ماوجب في الذمه) په مقابله کي عين ( متعين) وصول کړي دي.حالانکه د عين او دين په منځ کي هيڅ مماثلت نشته.اوهرکله چي په دي صورت کي هيڅ مماثلت نشته.نود گواهانو ضامن جوړول به هم صحيح نه وي.خو کله چي مدعی قبضه اوکړله.نو په قبضه کاوه سره هغه هم عين ( متعين) شو.اود گواهانو نه چي وصول کړي شوى دى.هغه هم عين ( متعين) دي.او ددوي (دوه) مال عين په منځ کي مماثلت موجود دي.نو په دي صورت کي ضامن جوړول صحيح دى.دا دي واضحه وي.چه د ذکر دليل په اعتبار سره په عين او دين کي هيڅ توپير نشته.يعني د گواهانو په گواهۍ سره د مدعی عليه په ذمه ( عين) کپړه وغيره واجب شوى وي.او که دين ( سره زر يا سپين زر) واجب شوى وي.په دواړه صورتونو کي به ذکر شوي دليل جاري کيږي.البته شيخ الاسلام په عين او دين کي توپير کړي دي.هغوی فرماني.که مشهود به عين وي.يعني گواهانو د مال عين کپړي وغيره گواهي ورکړي وي.نود رجوع کولو نه روسته به گواهان د هغي ضامن جوړولي شي.اگرچه مدعی په هغي قبضه نه وي کړي.اوکه مشهود به سره زر يا سپين زر وي.نود رجوع نه روسته به گواهان هغه وخت ضامن جوړولي شي.کله چي مدعی په دي باندي قبضه اوکړي.د قبضه نه وړاندي ضامن جوړول صحيح نه دي.

## د يو گواه د رجوع کولو حکم

قال فان رجع احدهما فرمائي بيا که په دوی دواړو گواهانو کي يو رجوع اوکړله. ضمن النصف نود نيم مال به ضامن وي.

تشریح:- صورت د مسئلي دادي.که دوي (دوه) سړي د يو مال گواهي ورکړي.بيا په هغوی کي يو رجوع اوکړي.نو رجوع کونکي به د نيم مال ضامن وي.د جامع کبير په شروحاتو کي د رجوع عن الشهادت په سلسله کي يوه قاعده بيان کړي شوي ده.قاعده داده.چه په گواهانو کي کوم کس په گواهۍ باندي پاته شو.د هغه پاته کيدل معتبر دي.او چاچه رجوع اوکړله.د هغه رجوع کول به معتبر نه وي.

**وَالْأَصْلُ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ فِي هٰذَا بَقَاءُ مَنْ بَقِيَ** او اصل په دې اړه کې دادې چه په ګواهانو کې څوك په ګواهۍ پاته شو. د هغه پاته کېدل معتبر دی **لَا رُجُوعُ مَنْ رَجَعَ** او چاچه رجوع اوکړله. د هغه رجوع کول معتبر نه دی. **وَقَدْ بَقِيَ مَنْ بَقِيَ بِشَهَادَتِهِ نِصْفُ الْحَقِّ** اوکوم کس چې په ګواهۍ باندې پاته شو. د هغه نصف پاته شو.

**تشریح:**- دلیل دادې چه د مدعی په مدعی علیه باندې د دوې (دوه) ګواهانو په ګواهۍ سره حق ثابتیږی. او د دوه (دوه) ګواهانو د زیاتی د قاضی په فیصله کې اعتبار نه وی. بلکه کوم ګواه چې پخپله ګواهۍ باندې پاته کیږی. او د هغه اعتبار کولې شی. او چاچه د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله. دهغه اعتبار نه کیږی. خکه که د رجوع کونکی د دې اعتبار اوکړې شی. نو په کوم صورت کې چې ګواهان درې وی. په هغه صورت کې به رجوع کونکی باندې ضمان هم واجب وی. او نصاب شهادت یعنی د دوې (دوه) ګواهانو په وجه به په مدعی علیه باندې پوره حق هم پاته وی. دا بالکل د خندا خبره ده. چه پوره حق دې هم پاته شی. او ګواه دې د حق د یوې برخې (حصې) ضامن هم وی. نو ثابته شوه. چه د رجوع کونکی ګواه اعتبار به نه کیږی.

هم ددې قاعدې لاندې که دوې (دوه) ګواهانو کې یو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله. نو رجوع کونکې ګواه به د نیم مال ضامن وی. خکه چې یو ګواه کوم چې پخپلې ګواهۍ باندې پاته دې. د هغه په ګواهۍ سره نیم مال پاته کیږی. خکه چې د دواړه ګواهانو په ګواهۍ سره پوره مشهود به مال ثابتیږی. نود هر یو په مقابله کې نیم مال شو. که دواړه ګواهانو رجوع کړې وه. نو هر یو به د نیم مال ضامن کیدلو. نو هرکله چې یو ګواه رجوع اوکړله. اویو پخپله ګواهۍ باندې پاته شو. نو رجوع کونکې به د نیم مال ضامن وی. او په ګواهۍ باندې د پاته کیدونکی په ګواهۍ سره به نیم مال پاته وی.

اعتراض: په دې موقع باندې یو اعتراض کیدای شی. هغه داچه په دوې (دوه) ګواهانو کې د یوکس رجوع کاوه نه روسته صرف د یوګواه ګواهی پاته کیدلو سره د نصف مال پاته کیدل موږ نه منو. خکه چې کوم ګواه پخپله ګواهۍ باندې پاته کیږی. هغه یو فرد (نفر) دې. اود یو فرد په ګواهۍ سره ابتداء کې څه شی نه ثابتیږی. نو لکه څنګه چې په ابتداء کې د یو فرد په ګواهۍ سره څه شی نه ثابتیږی. دغه ډول بقاء هم د یو فرد په ګواهۍ سره څه ثابتیدل پکار نه دی. حالانکه تاسو د یو فرد پخپله ګواهۍ باندې پاته کیدلو سره نیم مال مشهود به پاته ساتلې دې.

خواب: ددې خواب دادې چه د ابتداء په مقابله کې بقاء آسان او سهل وی. نو ممکن ده. چه ابتداء د یو شی په ذریعه یو شی نشی ثابتیدلې. خو بقاء ددغه شی په ذریعه ثابتیدلې شی. لکه څنګه چې د نصاب یوه برخه ابتداء زکاة نه واجبوی. خو بقاء واجبوی. یعنی که یوکس په پیل د کال کې د نصاب مالك نه وی. بلکه د نصاب د یوې برخې (حصې) مالك وی. نو په هغه باندې زکاة نه واجبیږی. خوکه پوره کال د نصاب مالك پاتې شو. او بیا د هغې یوه برخه ضائع شوه. نو څومره قدرې مال چې موجود دې. هم د هغې په اندازه به زکاة واجب پاتې کیږی. اوګورئ. د نصاب یوه برخه په ابتداء کې د واجب زکاة ثابتولو صلاحیت نه لری. خو د بقاء ثابتولو صلاحیت لری. دغه ډول د یو فرد په ګواهۍ سره ابتداء اګرچه مشهود به نشی ثابتیدلې. خو بقاء د یو فرد په ګواهۍ سره نیم مشهود به پاته ساتلې کیدای شی.

**وَإِنْ شَهِدَ بِالْمَالِ ثَلَاثَةٌ فَرَجَعَ أَحَدُهُمْ فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ** اوکه دریو سړو د مال ګواهی ورکړله. بیا په دوی کې یو رجوع اوکړله. نو په ده باندې ضمان نشته. **لِأَنَّهُ بَقِيَ مَنْ بَقِيَ بِشَهَادَتِهِ كُلُّ الْحَقِّ** خکه چې کوم خلګ په ګواهۍ باندې پاته دی. (د هغوی په ګواهۍ سره) پوره حق پاته کیږی. **وَهٰذَا لِأَنَّ الْاِسْتِحْقَاقَ بَاقٍ بِالْحُجَّةِ** اودا خکه چې استحقاق حجت سره پاته دې.

**تشریح:**- اوکه دریو سړو دمال ګواهی ورکړله. بیا په هغوی کې یو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله. نو په دې رجوع کونکی به ضمان واجب نه وی. خکه چې د رجوع کونکی نه علاوه د ګواهانو د دومره تعداد نه روسته هم دوې (دوه) ګواهان پاته دی. اود دوو په ګواهۍ سره پوره حق ثابتیږی. نو په دې صورت کې به د دوې (دوه) ګواهانو په



ګواهۍ سره مدعی علیه باندې پوره حق ثابتیږی. او رجوع کونکې ګواه به ضامن خکه نه وی. چه په مشهود به باندې د مدعی استحقاق د حجت تامه په ذریعه پاته دې. یعنی د پاته دوې (دوه) ګواهانو په ګواهۍ سره د مدعی په مدعی علیه باندې پوره حق ثابت دې. نو رجوع کونکی ګواه د خپلې ګواهۍ نه په رجوع کاوه سره چونکه د مدعی علیه هیڅ نه دی تلف کړی. خکه به په هغه باندې ضمان واجب نه وی.

**وَالْمُتْلِفُ مَتَى اسْتَحَقَّ سَقَطَ الضَّمَانُ** و شی متلف (کوم شی چې تلف کړې شو) چې کله مستحق شو. نود تلف کونکی نه ضمان ساقطیږی. **فَأَوْلَى أَنْ يَمْتَنِعَ** نو په رجوع کونکی به په درجه اولی ضمان ممتنع وی.

**تشریح:**- علامه مرغینانی ﷫ ترقی کوی. فرمائی. که یو مال تلف کړې شو. او قاضی د مالك لپاره په تلف کونکی باندې د ضمان فیصله ورکړله. بیا کله چې په دې مال باندې بل کوم کس خپل حق ثابت کړو. اود تلف کونکی نه ئې ضمان وصول کړو. نو کوم ضمان چې د قاضی په قضاء سره مالك لپاره ثابت شوې وو. هغه د تلف کونکی نه ساقطیږی. نو هرکله چې پاته کیدونکی دوې (دوه) ګواهانو سره مدعی علیه باندې د مدعی پوره حق ثابت شو. نو په رجوع کونکی ګواه باندې د مدعی علیه لپاره په درجه اولی ضمان نه لازمیږی. یعنی هرکله چې د استحقاق ښکاره کیدلو نه روسته زمان ساقطیږی. نود استحقاق ښکاره کیدلو نه روسته به په درجه اولی ضمان نه لازمیږی. خکه چې ضمان نه لازمیدل آسان دی. په نسبت ددې چې د لازمیدلو نه روسته هغه ساقط کړې شی. ددې صورت دادې. چه خالد د حامد مال تلف کړو. بیا قاضی د حامد لپاره په متلف (خالد) باندې د ضمان فیصله اوکړله. بیا عارف تلف کړی مال باندې خپل استحقاق ثابت کړو. اود متلف (خالد) نه ئې ضمان واخستلو. نو کوم ضمان چې د قاضی په حکم سره حامد لپاره په متلف (خالد) باندې ثابت شوې وو هغه ساقطیږی. نو دغه ډول هرکله چې په دریو ګواهانو کې یو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله. نو ګویا هغه چې پخپلې ګواهۍ سره کوم حق د مدعی لپاره ثابت کړې وو. په رجوع کاوه سره ئې هغه حق تلف کړو. او مدعی علیه ددغه حق مستق شو. نو ددې رجوع کونکی مدعی علیه لپاره ضامن کیدل پکار وو. خو چونکه دوې (دوه) ګواهان پاته دی. او ددوی په ګواهۍ سره پوره حق ثابتیږی. په دې وجه ښکاره شوه. چه ددې حق مستحق مدعی دې. او مدعی علیه مستحق نه دې. نو هرکله چې د پاته دوې (دوه) ګواهانو په ګواهۍ سره د مدعی استحقاق ثابت شو. نو رجوع کونکې ګواه به د مدعی علیه لپاره په درجه اولی ضامن نه وی.

**فَإِنْ رَجَعَ الْآخَرُ ضَمِنَ الرَّاجِعَانِ نِصْفَ الْمَالِ** نو که په دریو کې دوهم هم رجوع اوکړله. نو دواړه رجوع کونکی به د نصف حق ضامن وی. **لِأَنَّ بِبَقَاءِ أَحَدِهِمْ يَبْقَى نِصْفُ الْحَقِّ** خکه چې په دوی کې د یو (ګواه) په بقاء سره نصف حق پاته کیږی.

**تشریح:**- علامه مرغینانی ﷫ فرمائی. که په دریو کې د یو نه روسته دوهم هم رجوع اوکړله. نودا دواړه رجوع کونکی به د نصف حق یعنی د نیم مال مدعی علیه لپاره ضامن وی. خکه چې په دواړه ګواهانوکې د یو ګواه پاته کیدلو په وجه د مدعی په مدعی علیه باندې نیم حق پاته کیږی. ګویا رجوع کونکی دوې (دوه) ګواهانو د مدعی علیه نصف حق تلف کړې دې. او هرکله چې نصف حق تلف کړې شی. نو دواړه ګواهان به د نصف حق ضامن وی.

اعتراض: دلته یو اعتراض دې. چه کوم ګواه اولاً رجوع کړې ده. په هغه باندې بالکل ضمان واجبیدل پکار نه دی. خکه چې تاسو قاعده بیان کړې ده. چه پاته کیدونکی ګواه معتبر وی. او رجوع کونکی معتبر نه وی. نود ړومبی ګواه رجوع کاوه نه روسته چونکه نصاب شهادت (دوې (دوه)) پاته وو. په دې وجه هغه هیڅ شی تلف نکړو. خوکله چې ددې نه روسته دوهم ګواه رجوع اوکړله. نو هغه نصف حق تلف کړو. نو هرکله چې ده نصف حق تلف کړو. نوهم په ده باندې د نصف حق ضمان واجبیدل پکار دی. او ړومبې رجوع کونکې په دې ضمان کې شریکول پکار نه دی؟

خواب: ددې خواب دادې. چه هرکله درې ګواهانو ګواهی ورکړله. نود مدعی حق د دریو واړو ګواهانو سره ثابت شوې دې. بیا هرکله چې یوګواه رجوع اوکړله. نو ددې ګواه کاذب کیدل ښکاره شو. اود دوهم د کاذب کیدلو احتمال دې. بیا هرکله چې دوهم رجوع اوکړله. نو معلومه شوه. چه د نصف حق اتلاف د ابتداء نه ددو دواړو په

ګواهۍ سره وو.نو هرکله چې د نصف حق ضائع کول د دوارو په ګواهۍ سره دي.نو ضمان به هم په دوارو باندې لازم وي.

وَإِنْ شَهِدَ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ فَرَجَعَتْ امْرَأَةٌ ضَمِنَتْ رُبُعَ الْحَقِّ اوکه يو سړی او دوې (دوه) ښځو ګواهي ورکړله.بيا يوې ښځې رجوع اوکړله.نو هغه به د څلورمې برخې (حصې) د حق ضامنه وي. لِبَقَاءِ ثَلَاثَةِ الْأَرْبَاعِ بِبَقَاءِ مَنْ بَقِيَ خکه چې د يوسړی اود يوې ښځې په پاته کيدلو سره د څلوروحصو درې برخې (حصې) حق پاته دي. وَإِنْ رَجَعَتَا ضَمِنَتَا نِصْفَ الْحَقِّ اوکه چې د يوسړی دواړه ښځو رجوع اوکړله.نو دواړه به د نصف ضامن وي. لِأَنَّ بِشَهَادَةِ الرَّجُلِ بَقِيَ نِصْفُ الْحَقِّ خکه چې د يو سړی په شهادت سره نصف حق پاته کيږي.

حل اللغة: ① ربع -څلورمه برخه -② بقاء-پاته کيدل-③ ثلاثة الارباع-درې حصې-④ المراتان-دوې (دوه) ښځې

تشريح:- اوکه په مال باندې يوسړی او دوې (دوه) ښځو ګواهي ورکړله.بيا يوې ښځې رجوع اوکړله.نودا ښځه به د څلورمې برخې (حصې) د حق ضامنه وي.خکه چې د يوسړی او يوې ښځې په پاته کيدلو سره د څلوررو درې برخې (حصې) حق پاته دي.ددې وجه داده.چه دوې (دوه) ښځې د يو سړی قائم مقام وي.نو نصف حق به د دوارو ښځو په مقابله کې وي.اوهرکله چې نصف حق د دواړه ښځو په مقابله کې دې.نود يو سړی په رجوع کاوه سره څلورمه برخه حص تلف شو.او درې برخې (حصې) پاته شوې.اوکه دوارو ښځو رجوع اوکړله.نو دواړه به د نصف حق ضامن وي.خکه چې د يو سړی په ګواهۍ سره نصف حق پاته شوې دې.خکه چې دوې (دوه) ښځې د يو سړی قائم مقام وي.نو نصف حق به د سړی په مقابله کې وي.او نصف به د دوارو ښځو په مقابله کې وي.نود سړی په مقابله کې چې کوم نصف حق وو.هغه پاته شو.اود دوې (دوه) ښځو په مقابله کې چې کوم نصف حق وو.د هغوی په رجوع کاوه سره تلف شو.چه د هغې ضمان به په دوی دوارو باندې لازم وي.

### په يوسړي او لس ښځو ګواهانوکښې د اته ښځو په رجوع سره د ضمان حکم

وَإِنْ شَهِدَ رَجُلٌ وَعَشْرُ نِسْوَةٍ اوکه يوسړی او لس ښځو ګواهي ورکړله. ثُمَّ رَجَعَ ثَمَانٌ فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِنَّ اوکه يوسړی او لس ښځو ګواهي ورکړله. بيا اتو ښځو رجوع اوکړله.نو په دوی به هيڅ ضمان نه وي. لِأَنَّهُ بَقِيَ مَنْ يَبْقَى بِشَهَادَتِهِ كُلُّ الْحَقِّ خکه چې د ګواهانو دومره تعداد پاته دې.چه دهغوی په ګواهۍ سره پوره حق پاته کيږي.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.که يوسړی او لس ښځو د يومال ګواهي ورکړله.بيا په دوی کې اتو ښځو رجوع اوکړله.نو په هغوی به هيڅ ضمان واجب نه وي.خکه چې د اتو ښځو د رجوع کاوه نه روسته د ګواهانو دومره تعداد پاته دې.چه دهغوی په ګواهۍ سره پوره حق پاته کيږي.يعنی د اتو ښځو د رجوع کاوه نه روسته يو سړې او دوې (دوه) ښځې پاته دی.اود يوسړی او دوې (دوه) ښځو په ګواهۍ سره پوره حق ثابتيږي.نو هرکله چې د يوسړی او دوې (دوه) ښځو پوره حق پاته دې.اود رجوع کونکو ښځو په رجوع کاوه سره په حق کې هيڅ کمې نه واقع کيږي.نود رجوع کاوه په وجه به په هغوی باندې هيڅ ضمان واجب نه وي.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.او هم دا د امام شافعي رحمه الله يو قول دې.

فَإِنْ رَجَعَتْ أُخْرَى كَانَ عَلَيْهِنَّ رُبُعُ الْحَقِّ نوکه د اتونه علاوه يوکس رجوع اوکړله.نو په دوی ټولو به د څلورمې برخې (حصې) حق ضمان واجب وي. لِأَنَّهُ بَقِيَ النِّصْفُ بِشَهَادَةِ الرَّجُلِ خکه چې نصف حق د يوسړی په ګواهۍ سره پاته دې. وَالرُّبُعُ بِشَهَادَةِ الْبَاقِيَةِ فَبَقِيَ ثَلَاثَةُ الْأَرْبَاعِ او څلورمه برخه د يوې ښځې ګواهۍ سره پاته ده.نو درې برخې (حصې) پاته شوې.

تشريح:- اوکه د اتو نه علاوه يوې بلې ( نهمې) ښځې هم رجوع اوکړله.نو په دې نهو ښځو باندې څلورمه برخه ضمان واجب وي.خکه چې په ګواهانو کې يو سړې او يوه ښځه پاته شوې دی.اود يوسړی په ګواهۍ سره نصف حق پاته شو.اود يوې ښځې په ګواهۍ سره څلورمه برخه حق پاته شوې دې.نو دغه ډول په څلوروکې درې برخې (حصې) حق پاته شوې دې.او څلورمه برخه حق چونکه د نهو ښځو په رجوع کاوه سره تلف شوې دې.په دې وجه به په نهو ښځو



باندې د څلورې برخې (حصې) حق ضمان واجب وي.

وَإِنْ رَجَعَ الرَّجُلُ وَالنِّسَاءُ فَعَلَى الرَّجُلِ سُدُسُ الْحَقِّ وَعَلَى النِّسْوَةِ خَمْسَةُ أَسْدَاسِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ [1] او که سړی او ټولو ښځو رجوع اوکړله.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په سړی باندې د حق شپږمه برخه واجب وي.او په ښځو پنځه سدسه واجب وي.

تشريح:- اوکه سړی او لس په لسه ټولو ښځو رجوع اوکړله.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په سړی باندې شپږمه اوپه ښځو به ( د شپږو حصو) پنځه برخې (حصې) حق ضمان واجب وي.د امام مالك، امام شافعي اود امام احمد رحمهم الله هم دا قول دې.

وَعِنْدَهُمَا عَلَى الرَّجُلِ النِّصْفُ وَعَلَى النِّسْوَةِ النِّصْفُ او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه په سړی نصف حق او په ښځو به نصف حق واجب وي. لِأَنَّهُنَّ وَإِنْ كَثُرْنَ يَقُمْنَ مَقَامَ رَجُلٍ وَاحِدٍ خکه ښځې اګرچه زياتې دی.خود يوسړی قائم مقام دی. وَلِهَذَا لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُنَّ إِلَّا بِانْضِمَامِ رَجُلٍ وَاحِدٍ خکه به د هغوی شهادت نه قبليږي.خود يوسړی په ملاويدلو سره.

تشريح:- صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه په سړی به د نصف حق ضمان واجب وي.او په لس واړه ښځو به د نصف حق ضمان واجب وي.د امام شافعي رحمه الله په اصحابوکې ددې قائل ابوالعباس دې. دليل دادې.چه ښځې اګرچه کثير دی.خو ټولې د يوسړی قائم مقام دی.هم دا وجه ده.چه سړی سره د ملاويدلو نه بغير د يواځې ښځو ګواهی نشی قبلولې.نود لسو ښځو شهادت د دوې (دوه) ښځو د شهادت پشان شوې دې.او ضمان په سړی او ښځو باندې نيم په نيمه واجبيږي.يعنی نصف ضمان په سړی باندې واجبيږي.او نصف ضمان په دغه لسو ښځو باندې واجبيږي.خکه چې ددوی شهادت د دوې (دوه) ښځو پشان دې.بيا دا نصف ضمان به په دغه ټولو ښځو باندې برابر واجب وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ كُلَّ امْرَأَتَيْنِ قَامَتَا مَقَامَ رَجُلٍ وَاحِدٍ، اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه دوې (دوه) ښځې د يوسړی قائم مقام دی. {قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي نُقْصَانِ عَقْلِهِنَّ عُدِلَتْ شَهَادَةُ اثْنَتَيْنِ مِنْهُنَّ بِشَهَادَةِ رَجُلٍ وَاحِدٍ} ([2]) نبی کريم صلی الله عليه وسلم د ښځو د عقل د نقصان په بيان کې فرمائيلی دی.چه په ښځو کې د دوو شهادت د يوسړی برابر وی. فَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدَ بِذَلِكَ سِتَّةُ رِجَالٍ نو داسې شوه.لکه چې کله په دې باندې شپږو سړو ګواهي ورکړې وی. ثُمَّ رَجَعُوا بيا دوی ټولو رجوع اوکړله.

تشريح:- د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه په لسوښځو کې هر دوې (دوه) ښځې د يوسړی قائم مقام دی. او ددې دليل دادې.چه رسول الله صلی الله عليه وسلم د ښځو د نقصان عقل په اړه کې فرمائيلی دی.چه په ښځو کې د دوې (دوه) ښځو شهادت د يوسړی د شهادت برابر وی.نود يوسړی اود لس ښځو شهادت ورکول داسې شو.لکه چې شپږو سړو سشهادت ورکړې وی.بيا دوی ټولو سړو رجوع کړې وی.نو واړه به برابر د يو يو سدس ضامن وی.نو دغه ډول به هر دوې (دوه) ښځې د يو يو سدس ضامن وی.نو په دې حساب سره به يوسړې د يو سدس ضامن وی.او لس ښځې به ( په شپږو حصوکې ) د پنځوحصو ضامن وی.

وَإِنْ رَجَعَ النِّسْوَةُ الْعَشَرَةُ دُونَ الرَّجُلِ بيا که لس په لسه ښځو رجوع اوکړله.او سړی اونکړله كَانَ عَلَيْهِنَّ نِصْفُ الْحَقِّ عَلَى الْقَوْلَيْنِ نو په دوی به په دواړه قولو باندې نصف حق واجب وی. لِمَا قُلْنَا دليل هم هغه دې.کوم چې موږ بيان کړو.

تشريح:- اوکه لس ښځو رجوع اوکړله.او سړی رجوع اونکړله.نود حضرت امام صاحب او صاحبين رحمهم الله اتفاق دې.چه

---

[1] ) القول الراجح هوهذا قول الإمام رحمه الله كذا في فتح القدير(٥٤٢\٦) والعناية (٥٤٢\٦) والدرالمنتقى (٣٠١\٣) والدرالمختار(٤٤٢\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٤٥\٢)۔

(٢) من حديث الخدري رضي الله عنه أخرجه البخاري في الحيض باب ٦\٣٠٤)۔

په دوي ټولو به د يو نصف حق ضمان واجب وي.ځکه وړاندې بيان شوي دي.چه پاته کيدونکي ګواهان معتبر وي.او رجوع کونکي معتبر نه وي.ددې قاعدې مطابق چونکه يو سړې ګواه پاته دې.ځکه به دده په ګواهۍ سره نصف حق پاته وي.او پاته نصف کوم چې د ښځو په رجوع کاوه سره تلف شوي دي.د هغې ضمان به په دې ټولو باندې واجب وي.

وَلَوْ شَهِدَ رَجُلَانِ وَامْرَأَةٌ بِمَالٍ اوکه دوې (دوه) سړو او يوې ښځې د مال ګواهي ورکړله. ثُمَّ رَجَعُوا فَالضَّمَانُ عَلَيْهِمَا دُونَ الْمَرْأَةِ بيا ئې دهغې نه رجوع اوکړله.نو په دواړه سړو به ضمان واجب وي. په ښځه به واجب نه وي. لِأَنَّ الْوَاحِدَةَ لَيْسَتْ بِشَاهِدَةٍ بَلْ هِيَ بَعْضُ الشَّاهِدِ ځکه چې يوه ښځه ګواه نه وي. فَلَا يُضَافُ إِلَيْهِ الْحُكْمُ بلکه د ګواه جزء وي.نو حکم د قضاء به دې جزء اړخ ته نه منسوب کيږي.

**تشريح:**- اوکه دوې (دوه) سړو او يوې ښځې د کوم مال ګواهي ورکړله.بيا ټولو رجوع اوکړله.نو ضمان به صرف په دوي (دوه) سړو باندې واجب وي.په ښځه به واجب نه وي.ځکه چې يوه ښځه ګواه نه جوړيږي.بلکه د ګواه يوه برخه وي.اود قاضي په ذکر شوې مسئله کې د قاضي حکم به دې ښځې اړخ ته نه منسوب کيږي.بلکه دواړه سړو اړخ ته به منسوب وي.اوهرکله چې د قاضي حکم ښځې اړخ ته منسوب نه دې.نود رجوع کاوه په صورت کې به په دې ښځه باندې ضمان هم واجب نه وي.

### د ښځې په مهر مثل باندې د دواړه ګواهانو د رجوع کولو حکم

قَالَ وَإِنْ شَهِدَ شَاهِدَانِ عَلَى امْرَأَةٍ بِالنِّكَاحِ بِمِقْدَارِ مَهْرِ مِثْلِهَا اوکه دوې (دوه) ګواهانو په يوه ښځه باندې د هغې د مهرمثل په عوض د نکاح ګواهي ورکړله. ثُمَّ رَجَعَا فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمَا بيا دواړه ګواهانو رجوع اوکړله.نو په هغوی به هيڅ ضمان نه وي.

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې.چه يوسړي په يوه ښځه باندې د نکاح دعوه اوکړله.او د مهر مثل په عوض وي.اودوې (دوه) ګواهانو ددې نکاح ګواهي ورکړله.او قاضي دهغوی په شهادت باندې دنکاح فيصله ورکړله.بيا دواړو ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله.او دا ئې اووئيل.چه موږ د دروغو ګواهي ورکړې ده.نود هغوی په رجوع کاوه سره به نه نکاح فسخ کيږي.اونه به دغه دواړه ګواهان په دواړه صورتونو کې د څه شي ضامن وي.

وَكَذَلِكَ إِذَا شَهِدَا بِأَقَلَّ مِنْ مَهْرِ مِثْلِهَا اوغه شان که دوې (دوه) ګواهانو د مهرمثل نه د کم په عوض د نکاح ګواهي ورکړله. لِأَنَّ مَنَافِعَ الْبُضْعِ غَيْرُ مُتَقَوِّمَةٍ عِنْدَ الْإِتْلَافِ دځکه چې د اتلاف په وخت منافع بضع غيرمتقوم دی.

**تشريح:**- دغه ډول دا حکم په هغه صورت کې هم دې چې يوسړي په يوه ښځه باندې د نکاح دعوه اوکړله.او د مهر مثل نه په کم عوض ئې دعوی اوکړه اونور صورت د مسئلې هغه دې کوم چې په وړاندينۍ مسئله کې ذکرشو.نو حکم ئې هم د اولنی صورت پشان دې.

لِأَنَّ التَّضْمِينَ يَسْتَدْعِي الْمُمَاثَلَةَ دليل دا دې چې ضامن کول د مماثلت تقاضا کوی عَلَى مَا عُرِفَ .لکه چې معلوم شوی دی.

**تشريح:**- په زيربحث مسئله کې چې هرکله قاضي د نکاح حکم صادر کړې دې.نو ګواهانو د خپلې ګواهۍ سره د ښځې منافع بضع تلف کړی دی.يعنی منافع بضع د کومو چې ښځه مالکه وه.ګواهانو د نکاح ګواهي ور کاوه سره د هغې مالك سړې جوړ کړې دې.اودا د ښځې په حق کې سراسر اتلاف دې.بهرحال ګواهانو په شهادت ور کاوه سره د ښځې منافع بضع تلف کړی دی.او په کوم صورت کې چې منافع بضع تلف کړې شوی دی.په هغه صورت کې منافع بضع متقوم نه وی.او کوم شئ چې متقوم نه وی.د هغې ضمان هم نه واجبيږي.نود منافع بضع تلف کاوه په وجه ګواهانو باندې به هم د ښځې لپاره ددې ضمان واجب نه وی.

؟ پاتې شوه دا خبره چې د اتلاف په وخت منافع بضع غيرمتقوم ولې وی.نو ددې دليل دادې.چه تضمين يعنی د اتلاف په وجه د يو شئ ضامن جوړول ددې خبرې تقاضا کوی.چه د هلاك شوی شی او د شئ مضمون په منځ کې



مماثلت موجود وی.حالانکه دلته کې منافع بضع کوم چې تلف کړې شوی دی.او هغه مال په کوم سره چې ښځې ته ضمان ور کولې شی.د دواړو په منځ کې هيڅ مماثلت نشته.ځکه چې د مال عين او منفعت په منځ کې هيڅ مماثلت نه وی.ددې پوره تفصيل د خادم په قلم سره د ليکلی شوی کتاب،،قوت الاخيار شرح اردو نورالانوار،، کې کتلې شی؛بهرحال هرکله چې د منافع بضع او مال عين په منځ کې مماثلت نشته.نو منافع مضمون هم نشی کيدلې.او کوم شئ چې مضمون نه وی.هغه غير متقوم وی.نو ثابته شوه.چه منافع بضع غيرمتقوم دی.

؟ البته دا خبره ياد ساتئ چې په دې صورت کې لکه څنګه چې ضمان نه واجبيږي دغه ډول نکاح هم نه فسخ کيږي.اونکاح ځکه نه فسخ کيږي چې هدايه کې د ،،فصل فی نکاح المحرمات،، په آخر کې تيرشوی دی.که قاضي د دروغو په ګواهۍ باندې دکوم عقد يا فسخ فيصله ورکړی.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د هغه داحکم ظاهراً او باطناً دواړه شان نافذ کيږي.يعنی د فيصله صادريدلو نه روسته که د ګواهانو دروغ کيدل ښکاره شو.نود قاضي فيصله به نه ردکيږي.بلکه پخپل حال به ناطق او نافذ وی.نو

وَإِنَّمَا تُضْمَنُ وَتُتَقَوَّمُ بِالتَّمَلُّكِ اود مالك کيدلو په وجه منافع بضع مضمون او متقوم کيږي. لِأَنَّهَا تَصِيرُ مُتَقَوِّمَةً ضَرُورَةَ الْمِلْكِ إِبَانَةً لِخَطَرِ الْمَحَلِّ ځکه چې هغه د ملك په صورت کې د محل شرافت ښکاره کاوه لپاره ضرورةً متقوم کيږي.

**تشريح:**- دا د يوسوال ځواب دې.سوال دادې.که منافع بضع متقوم نه دی.لکه څنګه چې تاسو ثابت کړی دی. نو کوم وخت چې ميړه د نکاح په ذريعه د منافع بضع مالك کيږي.هغه وخت هم غيرمتقوم کيدل پکار دی. او په ميړه باندې د مهر په صورت کې مال وغيره هيڅ واجبيدل پکار نه دی.حالانکه داسې نه ده.بلکه ميړه چې کوم وخت د نکاح په ذريعه د منافع بضع مالك کيږي.هغه وخت منافع بضع متقوم وی.اود منافع بضع متقوم کيدلو په وجه ميړه باندې د مهر په صورت کې د يو اړتيا په وجه دا مضمون او متقوم منلې شوې دې.او هغه اړتيا د محل يعنی د ملك بضع شرافت ښکاره کول دی.

حاصل داچه د شرافتِ محل ښکاره کاوه لپاره منافع بضع متقوم ګنړلې شوی دی.ځکه که ميړه د منافع بضع په مفت کې مالك جوړ کړې شی.نو هغه به ددې عظمت او شرافت نه محسوسوی.حالانکه ملكِ بضع د نسل د حصول په وجه د عظمت او شرافت محل دې.اوهرکله چې د طلاق په ذريعه منافع بضع زائل کيدلې شی.نو هغه وخت چونکه د محل عظمت او شرافت ښکاره کاوه هيڅ اړتيا نه وی.په دې وجه په دې صورت کې به منافع بضع د خپل اصل مطابق متقوم وی.

### د يوسړي خلاف يوې ښځې سره د نکاح ګواهي او د ضمان حکم

وَكَذَا إِذَا شَهِدَا عَلَى رَجُلٍ يَتَزَوَّجُ امْرَأَةً بِمِقْدَارِ مَهْرِ مِثْلِهَا وهم دغه ډول کله چې دوې (دوه) ګواهانو د يوسړي خلاف د مهر مثل مقدار په عوض يوې ښځې سره د نکاح ګواهي ورکړله. لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ بِعِوَضٍ دليل دا دې چې دا تلف کول بالعوض دی. لِمَا أَنَّ الْبُضْعَ مُتَقَوِّمٌ حَالَ الدُّخُولِ فِي الْمِلْكِ ځکه چې ملك کې د داخليدو په حالت کې بضع متقوم کيږي. وَالْإِتْلَافُ بِعِوَضٍ كَلَا إِتْلَافٍ او د اتلاف بالعوض اود اتلاف بغيرعوض په مينځ کې هيڅ مماثلت نشته.

**حل اللغة:** ① اتلاف -هلاکول-② البضع -فرج-③ متقوم -قيمتی-④ عوض -بدله

**تشريح:**- د تيرې شوې مسئلې بل صورت دادې.چه يوې ښځې د يوسړي خلاف دا دعوه اوکړله.چه زما دده سره د مهرمثل په عوض نکاح شوې ده.او سړې ددې منکر دې.بيا دوې (دوه) ګواهانو د ښځې د دعوې موافق ګواهي ورکړله.او قاضي د ګواهۍ مطابق حکم صادر کړو.بيا هغوی د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله.نونه به دا نکاح فسخ کيږي.نه به دواړه ګواهان د ميړه لپاره د مهرمثل ضامن وی.

؟ د نکاح نه فسخ کيدلو دليل هم هغه دې.کوم چې مخکنۍ مسئله کې تير شوې دې.او په ګواهانو باندې د ضمان نه واجبيدلو دليل دادې.چه ګواهانو بلاشبه د ميړه مال د مهرمثل په اندازه خپلې ګواهۍ سره تلف کړې دې.خود مهر مثل په عوض کې ئې د ملكِ بضع مالك هم جوړ کړې دې.اود ميړه په ملك کې د داخليدو په وخت چونکه ملكِ بضع متقوم وی.په دې وجه مهرمثل د هغې عوض او هغه د مهرمثل عوض ګرځول هم صحيح دی.حاصل داچه

ګواهانو اګرچه د مهرمثل په اندازه د میړه مال تلف کړي دي.په دي طریقه چي د ګواهانو دګواهۍ په وجه میړه له د مهرمثل په مقدار مال مدعیه ښځي ته ورکول ضروري شوی دی.حالانکه هغه ددې مال په ور کاوه راضي نه وو.خود هغې په عوض ده ته ملك بضع هم حاصل شوي دي.نود ګواهانو د اړخه د مهرمثل اتلاف بالعوض یعنی د ملك بضع په عوض شو.اوکوم اتلاف چي بالعوض وی.هغه داسي دي.لکه چي هیڅ نه وی تلف کړې شوی.اوهرکله چي ګواهانو د اتلاف بالعوض په وجه د میړه هیڅ تلف کړی نه دی.نو په ګواهانو باندې د څه نه تلف کاوه په وجه د میړه لپاره ضمان هم واجب نه وی.

وَهٰذَا اودا ځکه لِأَنَّ مَبْنَى الضَّمَانِ عَلَى الْمُمَاثَلَةِ چي بناء د ضمان په مماثل باندې ده وَلَا مُمَاثَلَةَ بَيْنَ الْإِتْلَافِ بِعِوَضٍ اونشته مماثلت په مېنځګ د هلاکاوه کي په عرض سره وَبَيْنَهُ بِغَيْرِ عِوَضٍ اوبغیر دعوض نه

تشریح:- او اتلاف بالعوض د عدم اتلاف پشان کیدل،او په ګواهانو باندې ضمان نه واجبیدل ځکه دی.چه د ضمان مبنی په مماثلت ده.یعنی که د یوځیز مماثل موجود دي.نود هغې ضمان به واجب وی.ګنی واجب به نه وی.لکه څنګه چي د،، نورالانوار شرح قوت الاخیار،،کي خادم په تفصیل سره کلام کړي دي.او اتلاف بلاعوض مضمون وی.یعنی که د یوکس مال ني تلف کړو.او هغه ته د تلف شوی مال عوض ملاؤ نشو.نو په تلف کونکی به د تلف شوی مال ضمان واجب وی.او اتلاف بلا عوض چونکه د اتلاف بالعوض په معنی کي نه دي.ځکه به د اتلاف بالعوض په صورت کي اتلاف بالعوض اتلاف بلاعوض سره لاحق کولي شي.او ضمان به نه نشی واجبولې اتلاف بالعوض د اتلاف بلاعوض په معنی کي نه کیدل په دې وجه دی.چه ددې دوارو په منځ کي هیڅ مما نشته.بهرحال هرکله چي د اتلاف بالعوض په صورت کي تلف کونکی باندې ضمان نه واجبیږی.نو ګواهانو چونکه د میړه مال مهرتلف کړي دي.اودا تلف کول د ملك بضع په عوض کي دی.ځکه به په ګواهانو هم ض... واجب نه وی.

**د مهرمثل نه په زیات باندې ګواهۍ ورکولو نه رجوع کولوکښي د ضمان حکم**

وَإِنْ شَهِدَا بِأَكْثَرَ مِنْ مَهْرِ الْمِثْلِ ثُمَّ رَجَعَا اوکه دواړه ګواهانو دمهرمثل نه د زیات ګواهي ورکړله.بیا هغوی رجوع اوکړله. ضَمِنَا الزِّيَادَةَ نودواړه به د زیاتوالي ضامن وی.

تشریح:- د مسئلې بل صورت دا دې چي یوې ښځي په یو سړي باندې د مهرمثل نه د زیات په عوض د نکاح دعوه اوکړله . او سړي ددې واقعي منکر دي.نو دوې (دوه) ګواهانو د ښځي د دعوې مطابق ګواهي ورکړله.او قاضی فیصله اوکړله.بیا دواړه ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله.نو نه به دا نکاح فسخ وی.اونه به دوی دواړه د مهرمثل د مقدار ضامن وی.البته د مهرمثل نه د زیات به ضامن وی.

لِأَنَّهُمَا أَتْلَفَاهَا مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ دلیل دا دې چي دواړه ګواهانو زیاتی مقدار دعوض نه بغیر تلف کړي دي.

تشریح:- دلیل دا دې چي مهرمثل یعنی د یوزر اتلاف خو د ملك بضع په عوض کي دي.اود اتلاف بالعوض په صورت کي ضمان نه واجبیږی.نود مهرمثل په مقدار ضمان به په ګواهانو باندې واجب نه وی.خود مهرمثل نه د زیاتی مقدار یعنی د پنځه سوه روپو اتلاف بلاعوض دي.یعنی ددې پنځه سوه روپو په عوض کي میړه ته هیڅ ملاؤ نشو.ځکه به ددې پنځه سوه روپو ضمان ګواهانو باندې واجب وی.ځکه چي اتلاف بلاعوض ضمان واجبوی.

**د یوځیز د مثل یا زیات قیمت په عوض ګواهۍ نه رجوع کولو کښي دضمان حکم**

قَالَ وَإِنْ شَهِدَا بِبَيْعِ شَيْءٍ بِمِثْلِ الْقِيمَةِ أَوْ أَكْثَرَ اوکه دوې (دوه) ګواهانو د یو شي د مثل قیمت یا د زیات عوض په خرڅولو ګواهي ورکړله. ثُمَّ رَجَعَا لَمْ يَضْمَنَا بیا دواړو رجوع اوکړله.نو ضامن به نه وی. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِإِتْلَافٍ مَعْنًى. نَظَرًا إِلَى الْعِوَضِ ځکه چي دا عوض اړخ ته په نظر کاوه سره معنی اتلاف نه دي.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې چه مشتری مثلاً خالد دعوه اوکړله چه حامد خپل دا غلام چي د زر روپو د قیمت



دی.د زر روپو په عوض یا د یونیم زر روپو په عوض ما باندې راخرڅ کړي دي.او بائع ددې منکر دي.نو مشتري ګواه پیش کړل.دغه ګواهانو هم د مشتری د دعوې موافق شهادت ورکړو.بیا د قاضی دحکم نه روسته ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله.نودا د واړه ګواهان به د بائع لپاره ضامن نه وی. ځکه ګواهانو اګرچه خپلې ګواهۍ سره د بائع مبیع یعنی غلام تلف کړي دي.خو بائع ته ددې پوره معاوضه هم ملاؤ شوې ده.نودا به اتلاف بالعوض وی.او وړاندې تیر شوی دی.چه اتلاف بالعوض چونکه د عدم اتلاف په مرتبه کي وی.په دې وجه ددې ضمان نه واجبیږی.او هرکله چي د اتلاف بالعوض په صورت کي ضمان نه واجبیږی.نو په دې ګواهانو به هم ضمان نه واجبیږی.

وَإِنْ كَانَ بِأَقَلَّ مِنَ الْقِيمَةِ ضَمِنَا النُّقْصَانَ اوکه د قیمت نه د کم په عوض د خرڅولو ګواهي ني ورکړله.نو دواړه به د نقصان ضامن وی. لِأَنَّهُمَا أَتْلَفَا هٰذَا الْجُزْءَ بِلَا عِوَضٍ ځکه چي دې دواړو دا جزء بلا عوض تلف کړي دي.

تشریح:- اوکه مشتری د قیمت نه د کم په عوض مثلاً داووه سوو روپو په عوض د مذکوره غلام اخستلو دعوه اوکړله.او هم ددې مطابق ګواهانو ګواهي ورکړله.او بیا د قاضی د فیصلې نه روسته ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله.نو دواړه ګواهان به د بائع لپاره د نقصان په اندازه یعنی د اووه سوه روپو ضامن وی.ځکه چي دوی د غلام هغه جزء کوم چي د پنځه سوه روپو په مقابله کي دي.بلاعوض تلف کړي دي.یعنی د غلام قیمت زر روپۍ دي.او بائع ته صرف پنځه سوه روپۍ ملاؤ شوی دی.نو ګویا ګواهانو نیم غلام بلاعوض تلف کړي دي.او وړاندې تیر شوی دی.چه د اتلاف بلاعوض په صورت کي تلف کونکی باندې ضمان واجبیږی.نو په ګواهانو به د هغه مقدار ضمان واجب وی.کوم ني چي بلاعوض تلف کړي دي.یعنی پنځه سوه روپۍ کوم چي د نقصان مقدار دي.ګواهان به ددې ضامن وی.

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَكُونَ الْبَيْعُ بَاتًّا أَوْ فِيهِ خِيَارُ الْبَائِعِ، اوهیڅ توپیر نشته.چه بیع قطعي وی.یا په دې کي د بائع خیار وی. لِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْبَيْعُ السَّابِقُ ځکه چي سبب خو بیع سابق دي. فَيُضَافُ الْحُكْمُ عِنْدَ سُقُوطِ الْخِيَارِ إِلَيْهِ نود سقوط خیار په وخت حکم هم دې اړخ ته منسوب کولې شي. فَيُضَافُ التَّلَفُ إِلَيْهِمْ نو تلف کول به هم ددې اړخ ته منسوب وی.

**حل اللغة:** ① **باتا** -یقیني-② **یضاف**-نسبت کولې شی-③ **الخیار**-اختیار-④ **سقوط**-ساقطیدل

تشریح:- داعبارت په اصل کي د یوځواب دې سوال دادې.چه هرکله ګواهانو د کم قیمت په عوض د بیع ګواهي ورکړله.چه په دې کي بائع ته خیارشرط حاصل دي.نو ګواهانو د بائع هیڅ شی تلف نکړو.ځکه چي ګواهانو داسي بیع شهادت ورکړي دي.په کوم کي چي بائع ته خیارشرط حاصل دي.او په کوم بیع کي چي بائع ته خیار شرط حاصل وی.په هغې کي په مبیع کي د بائع ملك نه زائل کیږی.ګویا په دې بیع کي دګواهانو د ګواهۍ ور کاوه باوجود د مبیع یعنی د غلام نه د بائع ملك نه زائل کیږی.خوکله چي د خیارموده ( درې ورځې) تیره شوه.او بائع خاموش پاتې شو.نود هغه په خاموش پاتې کیدلو سره بیع نافذ شوه.او مبیع د هغه د ملك نه اووتلو.نود بائع د خیار په موده کي خاموش پاتې کیدل او بیع نه ردکول، ددې خبرې علامت دې.چه بائع په دې بیع باندې پخپله راضي دی.اود قیمت نه د کم په عوض د خپل ملك نه د مبیع په اوبنکلو باندې راضي دي.نو هرکله چي ګواهانو څه تلف نکړل.بلکه دا هرڅه بائع پخپله کړی دی.نو په ګواهانو باندې د نقصان دمقدار ضمان څنګه واجبیدلې شي.

ځواب:ددې ځواب دادې.چه بیع ،، بشرط خیارالبائع،،اګرچه د بائع د ملك نه مبیع نه اوباسي.او بائع د خپل ځان نه په ضرر لرې کاوه باندې قادر دي.په دې طریقه چي د خیار په موده کي بیع فسخ کړی.خود خیار په موده کي بیع فسخ نکړو.بلکه په دې بیع باندې راضي شو.او پخپل نقصان باندې د بائع رضامنعی د ګواهانو نه ضمان ساقطوی.خود مبیع نه د بائع ملك زائل کیدلو سبب هم هغه بیع سابق ده.کوم چي ګواهانو پخپله ګواهۍ سره ثابت کړې ده.نود مدت خیار تیریدلو نه روسته د خیار ساقطیدلو په وخت، مبیع نه د بائع ملك زائل کیدلوحکم به هغه

بیع سابق ارخ ته منسوب کیږي.کوم بیع چې په ګواهئ سره ثابت کړې شوې ده.نو هرکله چې د ملك د زوال حکم تیري شوې بیع ارخ ته منسوب دې.او تیره شوې د ګواهانو په ګواهئ سره حاصل شوې ده.نو ددې مبیع تلف کول به ګواهانو ارخ ته منسوب وی.اوهرکله چې د مبیع تلف کول ګواهانو ارخ ته منسوب دی.نو د څومره قدرې مبیع اتلاف چې بلاعوض دې.د هغې ضمان به هم ګواهانو باندې واجب وی.

## په طلاق قبل الدخول باندې د ګواهئ نه رجوع کولوکښې د ضمان حکم

وَإِنْ شَهِدَا عَلَى رَجُلٍ اوکه دوې (دوه) ګواهانو په یوسړی باندې ګواهي ورکړله. أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا چې ده خپلې ښځې سره د دخول نه وړاندې طلاق ورکړې دې. ثُمَّ رَجَعَا ضَمِنَا نِصْفَ الْمَهْرِ بیا هغوی رجوع اوکړله.نو دواړه به د نصف مهر ضامن وی.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که ښځې دعوه اوکړله.چه زما میړه ماته د دخول نه وړاندې طلاق راکړې دې.او میړه ددې منکر دې.بیا د ښځې موافق دوې (دوه) ګواهانو ګواهي ورکړله.چه ددې ښځې میړه د دخول نه وړاندې دې ته طلاق ورکړې دې.نو ددې ګواهئ موافق قاضی په زوجین (ښځه خاوند) کې تفریق اوکړو.او ددې ښځې مهر که مسمی وو.نو په میړه باندې نصف مهر واجب کړو.اوکه مهرمثل وو.نو په میړه باندې ئې متعه واجب کړله.بیا ددې فیصلې نه روسته دواړه ګواهانو د خپلې ګواهئ نه رجوع اوکړله.نودا دواړه ګواهان به د مهرمسمی په صورت کې د نصف مهر ضامن وی.امام احمد ﷬ هم ددې قائل دې.اود امام مالك او امام شافعي ﷭ هم یو روایت دادې.

لِأَنَّهُمَا أَكَّدَا ضَمَانًا عَلَى شَرَفِ السُّقُوطِ،دلیل دا دې چې دوی دواړو داسې ضمان مؤکد کړې دې.کوم چې ساقطیدلو ته نژدې وو. أَلَا تَرَى أَنَّهَا لَوْ طَاوَعَتْ ابْنَ الزَّوْجِ أَوْ ارْتَدَّتْ سَقَطَ الْمَهْرُ أَصْلًا آیا نه ګورې! که ښځه ابن زوج (د میړه خوی) سره مطاوعت (قدرت علی الوطی) اوکړی.یا مرتده شی.نو مهر بالکلیه ساقطیږی.

**حل اللغة:** ① طاوعت-تابعداری اوکړی-② شرف-نژدې -③ اکدا-مضبوط کړل-④ ارتدت-مرتده شوه

**تشریح:-** دلیل دادې.چه ښځې سره د دخول نه وړاندې د مهر ساقطیدلو هروخت امکان دې.که ښځې د خپل میړه (خاوند) دخوی کوکئ واخستله.یا العیاذ بالله ښځه مرتده شوه.نو مهر بالکل ساقطیږی.یعنی د دخول نه وړاندې د داسې قسمه نشوز او نافرمانئ په وجه د میړه ذمې نه مهر بالکل ساقطیږی.بهرحال کوم مهر چې د میړه په ذمه دې.د دخول نه وړاندې هغه نه مؤکد کیږی.بلکه ساقطولو ته نژدې وی. خوګواهانو د طلاق ګواهي ور کاوه سره مؤکد کړې دې.خکه چې د طلاق قبل الدخول په وجه میړه باندې نصف مهر اداکول واجبیږی.او په مؤکد (پخولو) باندې هم هغه واجبیږی.کوم چې په موجب (واجبونکی) باندې لازمیږی.اوګواهانو که پخپلې ګواهئ سره څه لازمولې.او بیا هغوی د خپلې ګواهئ نه رجوع کړې وه.نو په هغوی به ضمان واجبیدلو.نوهم دغه ډول هرکله چې دوې (دوه) ګواهانو پخپلې ګواهئ سره نصف مهرمؤکد کړې دې. او بیا ئې ددې نه رجوع کړې ده.نو په هغوی به ضمان واجب وی.په موجب چې کوم واجبیږی.په مؤکد هم هغه واجبیږی.

وَلِأَنَّ الْفُرْقَةَ قَبْلَ الدُّخُولِ فِي مَعْنَى الْفَسْخِ او خکه چې د دخول نه وړاندې فرقت د فسخ په معنی کې دې. فَيُوجِبُ سُقُوطَ جَمِيعِ الْمَهْرِ كَمَا مَرَّ فِي النِّكَاحِ،نودا پوره مهر ساقطیدل واجبوی.لکه څنګه چې په نکاح کې تیر شوی دی. ثُمَّ يَجِبُ نِصْفُ الْمَهْرِ ابْتِدَاءً بِطَرِيقِ الْمُتْعَةِ بیا به ابتداء نصف مهر د متعه په طور واجب وی. فَكَانَ وَاجِبًا بِشَهَادَتِهِمَا نودا به ددوی دواړو په ګواهئ سره واجب وی.

**حل اللغة:** ① الفرقة -بیلتون-② المعتق-ازادونکې-③ مندوب-مستحب-④ دارئة-دفع کونکې

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه د دخول نه وړاندې فرقت د فسخ په معنی کې دې.خکه چې معقودعلیه (عین بضع) ښځې ارخ ته دڅه تصرف نه بغیر صحیح سلامت واپس راغلې دې.او په فسخ نکاح سره پوره مهر ساقطیږی.لکه



څنګه چې د کتاب النکاح په باب المهر کې تیر شوی دی.او په فسخ نکاح سره پوره مهر خکه ساقطیږی.چه دفسخ په صورت کې عقد نکاح داسې کیږی.لکه چې نکاح نه وی منعقد شوې.او په میړه باندې نصف مهر د متعه په طور ابتداء د ګواهانو په ګواهئ سره واجبیږی.نوهرکله چې نصف مهر میړه باندې د ګواهانو په ګواهئ سره واجبیږی.نو ګویا میړه باندې نصف مهر د ګواهانو په ګواهئ سره واجب شوې دې.نوهرکله چې میړه باندې نصف مهر د ګواهانو په ګواهئ سره واجب شو.نود رجوع کاوه نه روسته به میړه لپاره ضمان هم په دغه ګواهانو باندې واجب وی.

پاتې شوه داخبره چې علامه مرغیناني ﷬ فرقت قبل الدخول ته د فسخ په معنی کې وئیلې دی.براه راست فسخ ئې ولې نه ده وئیلې.نو ددې جواب دادې.چه نکاح د لزوم نه روسته فسخ نه قبلوی.خو چونکه مبدل یعنی بضع صحیح سالم د تصرف نه بغیر د ښځې ملك ارخ ته واپس راغله.په دې وجه دا د فسخ مشابه شوه.او عین فسخ به نه وی.

## د غلام آزادولو ګواهئ نه په رجوع کولوکښې د ضمان حکم

قَالَ وَإِنْ شَهِدَا أَنَّهُ أَعْتَقَ عَبْدَهُ اوکه دوې (دوه) ګواهانو په دې خبره ګواهي ورکړله.چه ده خپل غلام آزاد کړې دې. ثُمَّ رَجَعَا ضَمِنَا قِيمَتَهُ بیا دواړو رجوع اوکړله.نو دواړه به ددې غلام د قیمت ضامن وی. لِأَنَّهُمَا أَتْلَفَا مَالِيَّةَ الْعَبْدِ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ خکه چې دوی دواړو مولا باندې ددې غلام مالیت مفت (بلاعوض) تلف کړو.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.دوې (دوه) سړو ګواهي ورکړله.چه عارف خپل غلام آزاد کړې دې.قاضي ددې مطابق فیصله ورکړله.بیا دواړه ګواهانو د خپلې ګواهئ نه رجوع اوکړله.نو دواړه ګواهان به د مولا لپاره د غلام د قیمت په اندازه د مال ضامن وی.دواړه ګواهان که مالداره وی.اوکه فقیران وی.خکه چې دوی دواړو کوم څه تلف کړی دی.یعنی غلام هغه مال متقوم دې.او دا تلف کول بلاعوض دی.او وړاندې تیر شوی دی.چه بلاعوض تلف کول ضمان واجبوی.خکه به دواړه ګواهان د مولا لپاره د غلام د قیمت ضامن وی.

وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او ولاء د آزادونکی لپاره دی. لِأَنَّ الْعِتْقَ لَا يَتَحَوَّلُ إِلَيْهِمَا بِهَذَا الضَّمَانِ خکه چې ددې ضمان په وجه آزادول دوی دواړو ګواهانو ارخ ته نه منتقل کیږی. فَلَا يَتَحَوَّلُ الْوَلَاءُ نو ولاء به هم دوی دواړ ارخ ته نه منتقل کیږی.

**تشریح:-** اود غلام ولاء به د مولا لپاره وی.خکه چې د ګواهانو د ګواهئ په ذریعه آزادی د مولا د ارخه متحقق شوې ده.یعنی آزادونکې مولا دې.او په حدیث کې فرمائیلې شوی دی. «الولاء لمن أعتق» ولاء د آزادونکی لپاره دې.نو هرکله چې ولاء د آزادنکی لپاره وی.او آزادونکې په دې مسئله کې مولا دې.نو ددې غلام ولاء به د مولا لپاره وی.زیات نه زیات دا وئیلې شی.چه هرکله ګواهانو د خپلې ګواهئ نه رجوع اوکړله.اود غلام ضمان ئې اداکړو.او ضامن د ضمان ادا کاوه نه روسته د شئ مضمون به مالك کیږی.نودا دواړه ګواهان د ضمان ادا کاوه نه روسته ددې غلام مالکان شو.او ددې آزادونکی شو.او دا دواړه ګواهان چې هرکله د غلام آزادونکی شو.نو ددې غلام ولاء هم ددې ګواهانو لپاره کیدل پکار دی.ددې ځواب دادې.چه هرکله د ګواهانو په ګواهئ ور کاوه سره غلام د مولا د ارخه آزاد شو.نودا آزادی په ضمان ادا کاوه سره ګواهانو ارخ ته نه منتقل کیږی.خکه چې آزادی انتقال نه قبلوی.نو هرکله چې آزادی ګواهانو ارخ ته نه منتقل کیږی.نو ولاء کوم چې د آزادئ تابع دې. هغه به هم ګواهانو ارخ ته نه منتقل کیږی. لنډیز داچه ولاء د مولا لپاره ثابت دې.

سوال: خوکه دا سوال اوکړې شي.چه مناسب داده.چه په دې مسئله کې ولاء د مولا لپاره نه وی.خکه چې مولا د آزادولو منکر دې.خکه که مولا د آزادولو منکر نه وو.نو د شهادت څه ارتیا وو.په آزادئ باندې شهادت ورکول ددې خبرې دلیل دې.چه مولا ددې منکر دې.او هرکله چې مولا د آزادولو منکر دې.نود هغه لپاره د ولاء څه سوال پیدا کیږی.

ځواب: ددې ځواب دادې.چه مولا بلاشبه منکر دې.خو په دې اړه کې د قاضي په قضاء سره شرعاً ددې تکذیب شوې دې.اود کوم سړی چې شرعاً تکذیب اوکړې شی.د هغې اعتبار نه کیږی.نو په مسئله کې به هم د مولا د

انکار اعتبار نه کيږي.اوهرکله چې د مولا د انکار اعتبار نشته.نو ازادی به هم د مولا د اړخه متحقق کيږي.او ولاء به هم هغه ته ملاوېږي.

## د قصاص ګواهۍ نه په رجوع کولو سره د ضمان حکم

**وَإِنْ شَهِدُوا بِقِصَاصٍ** اوکه ګواهانو د قصاص ګواهي ورکړله. **ثُمَّ رَجَعُوا بَعْدَ الْقَتْلِ ضَمِنُوا الدِّيَةَ** بیا ئې د قتل نه روسته رجوع اوکړله.نو دوی به د دیت ضامن وی. **وَلَا يُقْتَصُّ مِنْهُمْ** اود ګواهانو څخه به قصاص نشی اخستې.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی مثلاً حامد دعوه اوکړله.چه خالد زما پلار عمداً په ناحقه قتل کړې دې.او خالد ددې منکر دې.بیا دوې (دوه) ګواهانو ګواهي ورکړله.چه واقعتاً ( په حقیقت کې ) خالد د حامد پلار عمداً په ناحقه قتل کړې دې.قاضي په دې شهادت باندې فیصله ورکړله.او حامد د خپل پلار په قصاص کې خالد قتل کړو.ددې نه روسته ګواهانو د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله.نودا ګواهان به د خالد وارثانو لپاره د دیت ضامن وی.او دیت به د ګواهانو په عاقله ( د خاندان په خلګ و) باندې واجب وی.او ددې ګواهانو څخه به قصاص نشی اخستې.د حضرت امام مالک رحمه الله هم دا مذهب دې.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يُقْتَصُّ مِنْهُمْ** او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه د ګواهانو څخه به قصاص اخستلې شی. **الْقَتْلِ مِنْهُمْ تَسْبِيبًا** څکه چې د ګواهانو د اړخه قتل سبب جوړشوې او موجود شوې دې. **لِوُجُودِ** **فَأَشْبَهَ الْمُكْرِهَ** نو دا د مکره مشابه شو.

**حل اللغة:** ① اشبه-مشابه شو-② المکره-مجبوره کړې شوې-③ یعان-مدد کوی-④ یقتص-قصاص اخستې شی

**تشریح:-** د حضرت امام شافعي رحمه الله په نیز به په ګواهانو باندې قصاص واجب وی. دلیل دادې.چه ګواهان د خالد په قتل کې صرف مسبب دی.یعنی د خالد قصاصاً قتلولو سبب هم ددې ګواهانو ګواهي ده.که چرې دوی ګواهي نه وه ورکړې.نو خلد به قصاصاً نه قتلیدلو.او ګواهان د قتل مرتکب نه دی.بلکه د قتل مرتکب د مقتول ولی یعنی حامد دې.دغه ډول مکره یعنی زبردستی کونکې مسبب دې.او مرتکب نه دې.مثلاً عارف واصف ته اووئیل.چه ته شاهد قتل کړه.که ته شاهد قتل نکړې.نو زه به تا قتلوم.نو ددې اکراه په وجه واصف شاهد قتل کړو.نو عارف اکراه کونکې په دې قتل کې صرف مسبب دې.او د قتل مرتکب نه دې.

حاصل داچه ګواهان په مسبب کیدلو او د قتل په نه مرتکب کیدلو کې د مکره ( اکراه کونکی) مشابه دی.اودا خبره منلې شوې ده.چه د اکراه په صورت کې مکره ( اکراه کونکې،کوم چې مسبب دې.مرتکب نه دې) قصاصاً قتلولې شی.نوهم دغه ډول د قتل په ګواهۍ کې چونکه ګواهان مسبب دی.او غیرمرتکب دی.په دې وجه د رجوع عن الشهادت نه روسته دوی به هم قصاصاً قتلولې شی.

**بَلْ أَوْلَى، لِأَنَّ الْوَلِيَّ يُعَانُ وَالْمُكْرَهَ يُمْنَعُ** بلکه ددې نه هم زیات.څکه چې د ولی اعانت کولې شی.اومکره منع کولې شی.

**تشریح:-** علامه مرغیناني رحمه الله د امام شافعي رحمه الله دا اړخه فرمائي.چې ګواهان په مسبب کیدلو کې دمکره نه هم زیات دی.څکه چې شهادت په سببیت او مفضي الی القتل کیدلوکې د اکراه نه زیات دې.په دې طریقه چې د ګواهانو د ګواهۍ نه روسته د قاتل قتل تقریباً یقیني کیږي.او دده په قتل باندې د قصاص د ولی کومک هم کیږي.او هیڅ څوک د قصاص ولی د قصاص اخستلو نه نه منع کوی.ددې په خلاف اکراه ده.چه د اکراه په صورت کې قتل یقیني نه وی.بلکه قتل نه کیدل اغلب دی.په دې طریقه چې هرکله عارف واصف په دې خبره باندې مجبور کړو.چه هغه شاهد قتل کړی.نو واصف ( مکره) شرعاً هم ددې قتل نه منع کولې شی.او عادةً هم منع کولې شی.شرعاً خو څکه چې مکره یعنی واصف ته معلومه ده.چه زما دا قتل شرعاً ممنوع او حرام دې.نو هغه د آخرت په یره اود ایمان د تقاضې ( اوجزبې) په وجه به بخپله هم ددې ناحق قتل نه خان ساتی.او عادةً هم څه ناڅه انسان د داسې حرکتونو نه منع کیږي.نو هرکله چې مکره ( مجبور سړې) شرعاً او عادةً ددې قتل نه منع کیدای شی.نو اکراه به قتل اړخ ته زیات مفضي نه وی.بهرحال ثابته شوه.چه شهادت په سببیت او مفضي الی القتل کیدلو کې



داکراه نه زیات دې. نود اکراه په صورت کې به مکره ( اکراه کونکې کوم چې مسبب دې هغه) قصاصا په درجه اولی قتلولې شی.

**وَلَنَا أَنَّ الْقَتْلَ مُبَاشَرَةً لَمْ يُوجَدْ** او زموږ دلیل دادې.چه قتل مباشرةً نه دې موندلې شوې.

**تشریح:-** دلیل دادې.چه قتل د یو فعل نوم دې.اود قتل دا فعل د ګواهانو د اړخه اونه موندې شو.بلکه د قاتل د قتل مرتکب ولی د قصاص دې.او په ولی د قصاص باندې د قاتل د قتل قصاص نه لازمیږي.نو هرکله چې ولی د قصاص کوم چې مرتکب قتل دې.په هغه باندې د قاتل د قتل قصاص نه لازمیږي.نو دده نه علاوه یعنی ګواهان کوموچې د قاتل د قتل ارتکاب نه دې کړې.هغوی باندې به د قاتل د قتل قصاص څنګه لازمیږي. حاصل داچه د شهادت نه د رجوع کاوه نه روسته د ګواهانو نه د قاتل د قتل قصاص نشی وصولولې.

**وَكَذَا تَسْبِيبًا** او دغه ډول د ګواهانو د قتل سبب کیدل ( هم نه دی موندلی شوی) **لِأَنَّ التَّسْبِيبَ مَا يُفْضِي إِلَيْهِ غَالِبًا** څکه سبب هغه دې.کوم چې په عامه توګه (عام طور) باندې مسبب ته اورسوی. **وَهَاهُنَا لَا يُفْضِي** او دلته کې دګواهانو ګواهي مفضي نه ده. **لِأَنَّ الْعَفْوَ مَنْدُوبٌ** څکه چې معاف کول مستحب دی.

**تشریح:-** په دې عبارت سره علامه مرغیناني رحمه الله د امام شافعي رحمه الله په دلیل ردکول غواړی فرمائي.چه ګواهان د قاتل د قتل سبب پیدا کونکی هم نه دی.یعنی د ګواهانو ګواهي د قتل سبب نه دې.څکه د یوکار سبب هغه وی.کوم چې غالباً هغه کار ته اورسوی. لندیز دا چې مفضي الی الشئ د شئ سبب وی.او دلته کې د ګواهانو ګواهي مفضي الی القتل نه ده.یعنی دګواهانو د ګواهۍ نه روسته هم د قاتل قتل ضروری نه دې.څکه چې قاتل معاف کول مندوب او مستحب دی.بلکه په هره معامله کې معافي او درګزر کول د شریعت په نظر کې خوښ او مستحب دی.

دغه ډول د عفو د فضیلت په اړه کې احادیث هم راغلی دی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چا چې د نفاذ د قدرت باوجود خپله غصه اوڅکله.الله تعالی به د هغه زړه د امن او ایمان نه ډکه کړی.، د غصې څښلو نه مراد معاف کول دی.

نو معاف کول د الله جل جلاله او حبیب الله صلی الله علیه وسلم دواړو په نیز خوښ دی.اود تقویت ایمان اود درجاتو د ترقۍ ذریعه ده.بهرحال هرکله چې قاتل معاف کول مستحب دی.اود اجر وثواب سبب دې.نو اغلب داده.چه د مقتول ولی قاتل معاف کړی.اوهرکله چې معاف کول اغلب دی.نو شهادت مفضي الی القتل پاتې نشو.او هرکله چې شهادت مفضي الی القتل نه دې.نودا شهادت د قتل سبب او ګواهان مسبب نشو.

**بِخِلَافِ الْمُكْرَهِ لِأَنَّهُ يُؤْثِرُ حَيَاتَهُ ظَاهِرًا** په خلاف د مکره.څکه چې په ښکاره هغه خپل ژوند ته ترجیح ورکوی.

**تشریح:-** ددې په خلاف مکره ( څوک چې په زبردستۍ مجبوره کړې شوې وی) دې.چه هرکله هغه تاچه دهمکی ورکړله.که ته فلانې مثلاً شاهد قتل نکړې.نو موږ به تا قتل کړو.نود اکراه به بالعموم مفضي الی القتل وی.څکه ښکاره داده.چه مکره ( واصف) به خپل ژوند ته ترجیح ورکوی.یعنی د خپل ژوند په خاطر به مکره ( واصف) شاهد قتلولو باندې راضي شی.او هرکله چې دا خبره ده.نو اکراه مفضي الی القتل کیدلو په وجه سبب د قتل او اکراه کونکې ( عارف) مسبب شو.او وړاندې تیر شوی دی.چه قصاصاً مسبب قتلولې شی.غیر مسبب نشی قتلولې.نوګواه کوم چې د قتل مسبب نه دې.قصاصاً به هغه نشی قتلولې.او مکره ( اکراه کونکې) چونکه مسبب د قتل دې.څکه به هغه قتلولې شی.او چونکه اکراه کونکې مسبب دې.او ګواهان مسبب نه دی.په دې وجه ګواهان په اکراه کونکی باندې قیاس کول به هم صحیح نه وی.لکه څنګه چې امام شافعي رحمه الله قیاس کړې دې.

**وَلِأَنَّ الْفِعْلَ الِاخْتِيَارِيَّ مِمَّا يَقْطَعُ النِّسْبَةَ** او څکه چې فعل اختیاری د هغه څیزونو څنې دې.کوم چې نسبت قطع کوی.

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه موږ دا خبره نه منو.چه ګواهان د قاتل د قتل سبب دی.خو د قتل فعل کوم چې د قصاص د ولی د اړخه موندلې شوې دې.هغه د ولی په اختیار صحیح سره موجود شوې دې.اوکوم فعل چې د چا

په صحيح اختيار سره صادر شوې وي. د هغې نسبت هم هغه اړخ ته کيږي. بل اړخ ته نه کيږي. نو دلته کې هم د قتل نسبت د قصاص ولي اړخ ته کيږي. او ګواهانو اړخ ته به نه کيږي. او هرکله چې د قتل فعل ګواهانو اړخ ته منسوب نه دي. نو ګواهان به قتلونکي نه وي. او هرکله چې ګواهان قتلونکي نه دي. نو په هغوی به قصاص هم واجب نه وي.

**ثُمَّ لَا أَقَلَّ مِنَ الشُّبْهَةِ وَهِيَ دَارِئَةٌ لِلْقِصَاصِ** بيا خو د شبه نه کم نه دي. او شبه قصاص لرې کوي

**تشريح:**- اوکه دا هم اومنلې شي. چه ګواهانو اړخ ته د قتل نسبت نه منقطع کيږي. بلکه د مسبب په حيثيت سره هغوی اړخ ته قتل منسوب دې. نو بيا هم ګواهانو باندې قصاص واجبيدلو کې شبه ضرور ده. ځکه چې د قاتل د قتل حقيقي مرتکب ولي دې. او ګواهان د قتل سبب دی. نو په يو اعتبار سره يعنې د قتل د سبب کيدلو په اعتبار سره ګواهان قاتل دی. نو په يو اعتبار سره ګواهان قاتل دی. او په يو اعتبار سره ولي قاتل دې. اوهرکله چې په يو اعتبار سره ګواهان قاتل دی. او په يو اعتبار سره ولي قاتل دې. نو په ګواهانو باندې قصاص واجبيدلو کې شبه پيدا شوه. او شبه قصاص لرې کوي. نو د ګواهانو ځخه به قصاص لرې کولې شي. يعنې په هغوی به قصاص واجب نه وي.

**بِخِلَافِ الْمَالِ لِأَنَّهُ يَثْبُتُ مَعَ الشُّبُهَاتِ** په خلاف د مال. ځکه چې هغه شبهاتو سره ثابتيږي. **وَالْبَاقِي يُعْرَفُ فِي الْمُخْتَلِفِ** او ددې پاته بيان به په مختلف الرواية کې معلوميږي.

**تشريح:**- پاتې شودا سوال چې ديت چونکه د قصاص بدل دې. او قصاص په شبه سره لرې کيږي. په دې وجه ديت هم شبه سره لرې کيدل پکار دی. او په ګواهانو باندې د قصاص پشان ديت هم واجبيدل پکار نه دي.
ددې ځواب دادې. چه ديت مالي شبهاتو سره ثابتيږي. نو ديت به د مالي شبه باوجود په ګواهانو باندې واجب وي. او قصاص چې په شبهاتو سره ساقطيږي. ددې په ساقطيدلو سره مالي ديت (کوم چې په شبه سره نه ساقطيږي) ساقطيدل نه لازميږي.

## د شهود فرع په رجوع سره د ضمان حکم

**قَالَ وَإِذَا رَجَعَ شُهُودُ الْفَرْعِ ضَمِنُوا** اوکه شهود فرع رجوع اوکړله. نو ضامن به وي.

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې. که د شهادت على الشهادت په صورت کې شهود فرع د خپل شهادت نه رجوع اوکړله. نو بالاتفاق د مشهود ضمان به هم په هغوی واجب وي.

**لِأَنَّ الشَّهَادَةَ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ صَدَرَتْ مِنْهُمْ فَكَانَ التَّلَفُ مُضَافًا إِلَيْهِمْ** دليل دا دې چې شهادت د قاضي په مجلس کې هم ددوی نه صادر شوې دې. نو تلف کول به هم دوی اړخ ته منسوب کيږي.

**تشريح:**- دليل دا دې چې د قاضي په عدالت کې شهود فرع ګواهي ورکړې ده. نو تلف کول به هم دوی اړخ ته منسوب وي. او هرکله چې تلف دوی اړخ ته منسوب کيږي. نو ضمان به هم په دوی باندې واجب وي.

## د شهود فرع د شهادت نه د شهود اصل انکار او په رجوع سره د ضمان حکم

**وَلَوْ رَجَعَ شُهُودُ الْأَصْلِ** اوکه شهود اصل رجوع اوکړله. **وَقَالُوا لَمْ نُشْهِدْ شُهُودَ الْفَرْعِ عَلَى شَهَادَتِنَا** او وئيل چه موږ پخپل شهادت باندې شهود فرع شاهد نه دي مقرر کړي. **فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمْ** نو په شهود اصل به ضمان واجب نه وي

**تشريح:**- صورت د مسئلې دادې. که شهود اصل دا اووئيل. چه موږ شهود فرع پخپل شهادت باندې شاهد نه دي جوړ کړي. او شهود فرع پخپل شهادت باندې پاته دي. نو په شهود اصل به بالاجماع ضمان واجب نه وي.

**لِأَنَّهُمْ أَنْكَرُوا السَّبَبَ وَهُوَ الْإِشْهَادُ** ځکه چې اصول د سبب يعنې د ګواه جوړولو نه انکار کړې دې.

**تشريح:**- دليل دا دې چې هغوی سبب اتلاف يعنې پخپل شهادت باندې د شاهد جوړولو انکار کړې دې. يعنې د شهود فرع په شهادت سره چې د مدعى عليه کوم مال تلف شوې دې. يعنې ته ورکړې شوې دې. د هغې سبب مونږه



نه يو. ځکه چې موږ پخپل شهادت باندې شهود فرع شاهد نه دي جوړ کړي. نو هرکله چې شهود اصل د سبب اتلاف منکر دی. نو په دوی به ضمان اتلاف هم واجب نه وي.

**فَلَا يَبْطُلُ الْقَضَاءُ** او د قاضي حکم به نه باطليږي. **لِأَنَّهُ خَبَرٌ مُحْتَمِلٌ** ځکه چې دا خبر محتمل دې. **فَصَارَ كَرُجُوعِ الشَّاهِدِ** نوداسې شوه. لکه چې ګواهانو پخپله رجوع کړې وي.

**تشريح:**- اود شهود فرع په شهادت باندې چې قاضي کومه فيصله ورکړې ده. هغه به هم نه باطليږي. ځکه چې د شهود اصل پخپل شهادت باندې د شاهد جوړولو نه په انکار کاوه کې د صدق او کذب دواړو احتمال دې. يعنې دا احتمال هم دې. چه شهود اصل پخپل انکار کې رشتوني وي. او دا احتمال هم شته. چه دروغجن وي. نو صرف د احتمال په وجه به د قاضي فيصله باطل نه وي. لکه مثلاً که اصلي ګواهانو پخپله دقاضي په عدالت کې ګواهي ورکړې وه. او قاضي د هغې مطابق فيصله ورکړې وې. او بيا دې اصلي ګواهانو رجوع کړې وه. نو د هغوی په رجوع کاوه سره به د قاضي فيصله نه باطليدله. دغه ډول د هغوی د ګواه جوړولو نه په انکار کاوه سره به هم د قاضي فيصله نه باطليږي.

**بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْقَضَاءِ** په خلاف (ددې چې د قاضي) د قضاء نه وړاندې (دوی رجوع کړې) وي.

**تشريح:**- او که قاضي د شهود فرع په شهادت باندې هيڅ فيصله ورنکړله. اود فيصله ور کاوه نه وړاندې شهود اصل پخپل شهادت باندې د شهود فرع د شاهد جوړولو نه انکار اوکړو. نو قاضي به د شهود فرع په شهادت باندې فيصله نه ورکوي. لکه څنګه چې د قاضي د فيصلې نه وړاندې که اصلي ګواه د ګواهئ نه رجوع اوکړي. نو قاضي فيصله نشي ورکولې.

## د شهود فرع په مقررولو د شهود اصل د خپلې غلطئ په اقرارکولو د ضمان حکم

**وَإِنْ قَالُوا أَشْهَدْنَاهُمْ** اوکه شهود اصل اووئيل. چه موږ فروع ګواه کړي وو. **وَغَلِطْنَا ضَمِنُوا** او موږ غلطي کړې ده. نو اصل به ضامن وي. **وَهَذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ** اودا د امام محمد ﷬ په نيز دی.

**تشريح:**- که شهود اصل اووئيل. چه موږ فروع پخپل شهادت باندې شاهد جوړ کړي وو. خو زموږ نه غلطي شوې ده. يا ئې داسې اووئيل. چه موږ هغوی شاهد جوړ کړي وو. خو موږ رجوع کړې وه. نو په دې دواړه اقوالو کې به د امام محمد ﷬ په نيز شهود اصل ضامن وي.

**وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ لَا ضَمَانَ عَلَيْهِمْ**[1] اود امام ابوحنيفه او امام ابويوسف ﷬ په نيز اصلي ګواهانو باندې ضمان نشته. **لِأَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ بِشَهَادَةِ الْفُرُوعِ** دليل دا دې چې د قاضي حکم د فروع په شهادت باندې واقع شوې دې.

**تشريح:**- اود شيخينو ﷬ په نيز په شهود اصل به ضمان واجب نه وي. دليل دادې. چه د قاضي فيصله د فروع په شهادت باندې واقع شوې ده. ځکه چې قاضي په دې حجت باندې فيصله صادر کوي. د کوم چې هغه مشاهده کوي. او قاضي د فروع د شهادت مشاهده کړې ده. د اصول د شهادت مشاهده ئې نه ده کړې.

**لِأَنَّ الْقَاضِيَ يَقْضِي** ځکه چې قاضي هم په دې حجت سره حکم کوي **بِمَا يُعَايِنُ مِنَ الْحُجَّةِ وَهِيَ شَهَادَتُهُمْ**. د کوم چې هغه مشاهده کوي. او هغه د فروع ګواهي ده.

[1] القول الراجح هوهذا قول الشيخين ﷬ كذا فى الدر المنتقى (۳۰۳\۳) وفتح القدير (۵۵۰\۶) وتنوير الأبصار (۴۴۳\۴) نقلاً عن القول الراجح (۱۴۶\۲)-

**تشریح:-** دلیل دا دې چې د فروع شهادت د قاضی په مجلس کې موجود شوي دي.د اصول شهادت نه دي موجود شوي.بهرحال هرکله چې قاضی د فروع د شهادت مشاهده کړې ده.نود فروع شهادت به حجت وي.او هم ددې مطابق به قاضی فیصله ورکوي.اود اصل شهادت چونکه د قاضی په مجلس کې نه دي موجود شوي.خکه به د اصول شهادت حجت نه وي.او هرکله چې د اصول شهادت حجت نه دې او قاضی د هغوی په شهادت باندې فیصله نه ده ورکړې.نود هغوی د خپل شهادت نه رجوع کول به د اتلاف سبب هم نه وي.او هرکله چې د اصول رجوع کول د مشهود به د اتلاف سبب نه دي.نو په هغوی به ضمان هم واجب نه وي.

**وَلَهُ أَنَّ الْفُرُوعَ نَقَلُوا شَهَادَةَ الْأُصُولِ** اود امام محمد ﷫ دلیل دادې.چه فروع د اصول گواهی نقل کړې ده. **فَصَارَ كَأَنَّهُمْ حَضَرُوا** نودا داسې شوه.گویا اصول پخپله حاضر شوی وو.

**تشریح:-** د امام محمد ﷫ دلیل دادې.چه شهود فرع د شهود اصل شهادت د قاضی مجلس ارخ ته منتقل کولوکې د شهود اصل قائم مقام دی.هم دا وجه ده.چه د قاضی د قضاء لپاره د شهود اصل عادل کیدل هم شرعاً معتبر دی.بهرحال هرکله چې فروع د اصول قائم مقام دی.او فروع د اصول شهادت د قاضی په عدالت کې نقل کړې دې.نو داسې شوه.گویا شهود اصل د قاضی په مجلس کې پخپله حاضر شوی وو.او گواهی ئې ورکړې وه.او بیا په مجلس کې حاضر شوې دی.او رجوع ئې کړې ده.او په داسې کاوه سره اصول باندې ضمان واجبیږی.نو په ذکر شوې مسئله کې به هم اصول باندې ضمان واجب وي.

### د شهود اصل او فروع دواړو په رجوع سره د ضمان حکم

**وَلَوْ رَجَعَ الْأُصُولُ وَالْفُرُوعُ جَمِيعًا** وکه اصول او فروع دواړه ډلو رجوع اوکړله **يَجِبُ الضَّمَانُ عِنْدَهُمَا عَلَى الْفُرُوعِ لَا غَيْرُ** نود شیخینو ﷭ په نیز صرف په فروع به ضمان واجب وي.

**تشریح:-** علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.که اصول او فروع دواړه ډلو د شهادت نه رجوع اوکړله.نود شیخینو ﷭ په نیز به صرف په فروع باندې ضمان واجب وي.

**لِأَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ بِشَهَادَتِهِمْ** دلیل دا دې چې د قاضی حکم هم ددوی په شهادت باندې واقع شوې دې.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې د قاضی حکم د فروع په شهادت باندې واقع شوې دې.اود قاضی حکم د فروع په شهادت باندې خکه واقع شوې دې.چه قاضی په هغه شهادت باندې فیصله ورکوي.د کوم چې هغه مشاهده کوي.اود فروع شهادت چونکه د قاضی په مجلس کې موجود کیږی.په دې وجه قاضی د فروع د شهادت او حجت مشاهده کوي.او هرکله چې قاضی د فروع د شهادت مشاهده کوي.نو هم په دې به فیصله ورکوي.او هرکله چې قاضی د فروع په شهادت او حجت باندې فیصله ورکړې ده.نود فروع رجوع کول به د مشهود به د اتلاف سبب وي.او هرکله چې د فروع رجوع کول د مشهود د اتلاف سبب دې.نو ضمان به په فروع باندې واجب وي.په اصول به واجب نه وي.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ الْمَشْهُودُ عَلَيْهِ بِالْخِيَارِ** اود امام محمد ﷫ په نیز مدعی علیه ته اختیار دې. **إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْأُصُولَ وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْفُرُوعَ** که غواړی.نو اصول دې ضامن جوړ کړی. **لِأَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ بِشَهَادَةِ الْفُرُوعِ مِنَ الْوَجْهِ الَّذِي ذَكَرَا** خکه چې قضاء د فروع په شهادت باندې په هغه طریقه واقع شوې ده.کوم چې شیخینو ﷭ ذکر کړې ده. **وَبِشَهَادَةِ الْأُصُولِ مِنَ الْوَجْهِ الَّذِي ذَكَرَ فَيَتَخَيَّرُ بَيْنَهُمَا** اود اصول په شهادت باندې په هغه طریقه واقع شوې ده.کوم چې امام محمد ﷫ ذکر کړې ده.نو هغه ته به دواړو په منځ کې اختیار وي.

**تشریح:-** دلیل دامام محمد د قول دا دې چې د شیخینو ﷭ د بیان شوی دلیل نه معلومیږی.چه قاضی د فروع په شهادت باندې فیصله ورکړې ده.اود امام محمد ﷫ بیان کړې شوي دلیل «لأن الفروع نقلوا شهادة الأصول» نه معلومیږی.چه قاضی د اصول په شهادت باندې فیصله ورکړې ده.نود شیخینو ﷭ د بیان کړې شوی دلیل تقاضا داده.چه د رجوع کاوه په صورت کې په فروع باندې ضمان واجب وي.اود امام محمد ﷫ د بیان کړې شوی دلیل تقاضا داده.چه په اصول باندې ضمان واجب وي.او په دواړو باندې عمل کول اولی (او غوره) دی.په نسبت د یو



بریښودلو نه.په دې وجه دواړو دلیلونو باندې عمل کاوه سره مدعی علیه ته اختیار ورکړې شو.چه هغه اصول ضامن جوړ کړی.یا فروع ضامن جوړ کړی.

**وَالْجِهَتَانِ مُتَغَايِرَتَانِ** او دواړه طرفونه خپل منځ کې متغائر دی. **فَلَا يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا فِي التَّضْمِينِ** نو په ضامن جوړولوکې به اصول او فروع دواړه نشی جمع کولې.

**حل اللغة:** ① **الجهتان** -طرفونه- ② **متغايران** -یوبل نه بدل بدل دی- ③ **يجمع** -جمع کولې شی- ④ **التضمين** -تاوانی کول

**تشریح:-** خوکه څوك اعتراض اوکړی.چه دواړه دلیلونه جمع کاوه (او په دواړو باندې عمل کولو) سره اصول او فروع دواړه ولې د نیم نیم ضامن ولې جوړ نکړې شو؟ نو ددې ځواب دادې.چه دواړه دلیلونه بالکل متغائر دی.خکه چې شهادت اصول اصل حق باندې دی.او شهادت فروع په شهادت اصول باندې دې.او ددوی دواړو په منځ کې هیڅ مجانست نشته.او هرکله چې ددوی دواړو په منځ کې هیڅ مجانست نشته.او اصول او فروع د شهادت واحده په حکم کې گرځول.او ضامن جوړولوکې واړه نشی یوځائی کیدلې.بلکه هر فریق (او ډله) جلا جلا ضامن جوړولو کې به مدعی علیه ته اختیار وي.

**وَإِنْ قَالَ شُهُودُ الْفَرْعِ كَذَبَ شُهُودُ الْأَصْلِ أَوْ غَلِطُوا فِي شَهَادَتِهِمْ** وکه فروع اوونیل.چه شهود اصل دروغجن دی.یا هغوی په دې اړه کې غلطی کړې ده. **لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَى ذَلِكَ** نو ددوی دې قول اړخ ته به رجوع نشی کولې. **لِأَنَّ مَا أُمْضِيَ مِنَ الْقَضَاءِ لَا يُنْتَقَضُ بِقَوْلِهِمْ** خکه چې د قضاء کوم حکم تیر شو.ددوی په قول باندې نه ماتیږی.

**تشریح:-** علامه مرغینانی ﷫ فرمائی.که د قاضی د قضاء نه روسته شهود فرع اوونیل.چه شهود اصل په مدعی علیه باندې د دروغو گواهی ورکړې ده.یا شهود اصل په دې اړه کې غلطی کړې ده.نو د شهود فرع دې قول اړخ ته به توجه نشی ورکولې.خکه چې قاضی کومه فیصله ورکړې ده.هغه به ددوی په دې قول سره نه باطلیږی.خکه چې ددوی په دې قول کې د صدق او کذب دواړو احتمال دې.او د احتمال په وجه د قاضی فیصله نه باطلیږی.نود قاضی فیصله به باطل نه وي.

**وَلَا يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَيْهِمْ** او په فروع به ضمان هم واجب نه وي. **لِأَنَّهُمْ مَا رَجَعُوا عَنْ شَهَادَتِهِمْ** خکه چې هغوی د خپلې گواهی نه رجوع نه ده کړې. **إِنَّمَا شَهِدُوا عَلَى غَيْرِهِمْ بِالرُّجُوعِ** بلکه د خپل نه علاوه باندې ئې د رجوع گواهی ورکړې ده.

**تشریح:-** او ددې ونیلو په وجه به فروع باندې ضمان نه واجبیږی.خکه چې فروع د خپلې گواهی نه رجوع نه ده کړې.بلکه ددې خبرې گواهی ئې ورکړې ده.چه اصول د خپلې گواهی نه رجوع کړې ده.اودا قطعاً مفید نه دې.بهرحال په دې ونیلو سره به فروع ضامن نه وي.او اصول هم چونکه د قاضی په مجلس کې رجوع نه ده کړې.په دې وجه به هغوی هم ضامن نه وي.

### د تزکیه او تعدیل کونکو په رجوع سره د ضمان حکم

**قَالَ وَإِنْ رَجَعَ الْمُزَكُّونَ عَنِ التَّزْكِيَةِ** اوکه تزکیه او تعدیل کونکو د تزکیه نه رجوع اوکړله **ضَمِنُوا** نو هغوی به ضامن وي. **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** ([1]) اودا د امام ابوحنیفه ﷫ په نیز دی.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دادې.که گواهانو د یوکس خلاف د مال گواهی ورکړله.بیا تزکیه کونکو ددې گواهانو تزکیه اوکړله.او قاضی د مدعی علیه خلاف د مال فیصله اوکړله.او ددې فیصلې په بنا (بنیاد) مدعی په مال

[1] القول الراجح هو هذا قول الإمام الاعظم ﷫ كذا فی فتح القدير(۶\۵۵۱) والمجمع (۳\۳۰۴) والبحرالرائق (۴\۴۴۳) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۴۶)-

مشهود به باندې قبضه اوكړله.ددې نه روسته تزكيه كونكو د خپلې تزكيه او تعديل نه رجوع اوكړله.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز تزكيه كونكى به د مدعى عليه لپاره د مال مشهود به ضامن وى.امام مالك او امام محمد رحمهما الله هم ددې قائل دى.

وَقَالَا: لَا يَضْمَنُوْنَ او صاحبين رحمهما الله فرمائى چه ضامن به نه وى. لِأَنَّهُمْ أَثْنَوْا عَلَى الشُّهُوْدِ خَيْرًا ځكه چې تعديل كونكو د گواهانو ښه تعريف كړې دې.

تشريح:- په زير بحث مسئله كې صاحبين رحمهما الله فرمائى چه تزكيه كونكى به ضامن وى. دليل دادې چه تزكيه كونكو دگواهانو تعريف كړې دې.په كومه دعوه نې گواهى نه ده وركړې.نو د قاضى هغه فيصله دكوم په وجه چې د مدعى عليه مال تلف شوې دې په تزكيه باندې نه دې واقع شوې.بلكه د گواهانو په گواهئ باندې واقع شوې دې.او هركله چې د قاضى فيصله په گواهئ باندې واقع شوه. او په تزكيه باندې واقع نشوه.نود مدعى عليه مال تلف كيدل به تزكيه كونكو اړخ ته نه منسوب كيږى.او هركله چې اتلاف تزكيه كونكو اړخ ته منسوب نه دې.نو د تزكيه نه د رجوع كاوه په صورت كې به په تزكيه كونكو باندې ضمان هم واجب نه وى.

فَصَارُوْا كَشُهُوْدِ الْإِحْصَانِ نو داسې شو.لكه د احصان گواهان.

حل اللغة: ① الاحصان -پاكدامنى-② اليمين-قسم-③ المحض-صرف-④ رجع -واپس شو

تشريح:- دا تزكيه كونكى داسې شو.لكه د احصان گواهان.يعنى كه څلورو گواهانود عارف د زنا گواهى وركړله.بيا يوځو گواهانو د عارف د محصن يعنى د شادى شده (واده) كيدلو گواهى وركړله.او عارف رجم كړې شو.بيا د احصان گواهانو د احصان يعنى د شادى شده كيدو گواهئ نه رجوع اوكړله.نودا د احصان گواهان به د عارف وارثانو لپاره د ديت ضامن نه وى.نو لكه څنگه چې د احصان گواهان په رجوع كاوه سره د ديت نه ضامن كيږى.دغه ډول تزكيه كونكى به هم د تزكيه نه رجوع كاوه په صورت كې د مال مشهود به ضامن نه وى.

وَلَهٗ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې چه أَنَّ التَّزْكِيَةَ إِعْمَالٌ لِلشَّهَادَةِ تزكيه شهادت ته عمل وركول دى. إِذِ الْقَاضِىْ لَا يَعْمَلُ بِهَا ځكه به قاضى په شهادت باندې عمل نه وركوى. إِلَّا بِالتَّزْكِيَةِ خو په تزكيه سره. فَصَارَتْ بِمَعْنَى عِلَّةِ الْعِلَّةِ نو تزكيه د علة العلة په معنى كې شو

تشريح:- دمتن د وضاحت نه وړاندې د تمهيد په طور دا خبره زده كړه چې د علت، سبب، شرط، او علامت په منځ كې توپير دادې.چه علت په حكم كې دننه موثر وى.سبب د تاثير نه بغير حكم اړخ ته مفضى وى.او شرط نه په حكم كې دننه موثر كيږى.او نه حكم اړخ ته مفضى كيږى.بلكه د حكم وجود د هغې په وجود باندې موقوف وى.او علامت هغه دې.په كوم چې حكم دلالت اوكړى.خود حكم وجود د هغې په وجود باندې موقوف نه وى.لكه مثلاً يوكس خپلې ښځې ته ،،انت طالق ان دخلت الدار،، اووئيل.نو ،،انت طالق،، د طلاق واقع كيدلو علت، او ،،دخول دار،، شرط دې.او شهادت د قاضى د حكم لپاره سبب دې.او د ټرين (ريل گاړى) راتلو نه وړاندې هارن وهل د ټرين د راتلو علامت دې.

اوس د متن مسئلې ته راشه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه تزكيه د گواهئ كارآمد (او گټور) جوړولو علت دې.يعنى قاضى د هغه گواهئ موافق عمل كوى.د كومې گواهئ د گواهانو چې تعديل شوې وى.او گواهى د قاضى د فيصلې علت دې.حاصل داچه د قاضى د فيصلې علت شهادت دې.اود شهادت كارآمد جوړولو علت تعديل دې.نو تعديل كول د علة العلة په معنى كې شو.او حكم چې څنگه علت اړخ ته منسوب كيږى.دغه ډول علة العلة اړخ ته هم منسوب كيږى.

علامه مرغينانى رحمه الله تزكيه ته د علة العلة په معنى كې اووئيل.او علة العلة نې اونه وئيل.ددې وجه داده.چه شهادت د مال مشهود د اتلاف علت نه دې.بلكه سبب دې.چه دې اړخ ته د قاضى حكم منسوب دې.نو هركله چې شهادت علت نه دې.نو تزكيه به علة العلة څنگه وى.په دې وجه تزكيه ته علة العلة په معنى كې اووئيلې شو.



بِخِلَافِ شُهُوْدِ الْإِحْصَانِ په خلاف د احصان د گواهانو. لِأَنَّهٗ شَرْطٌ مَحْضٌ ځكه چې دا شرط محض دې.

تشريح:- دا عبارت د صاحبينو رحمهما الله د قياس ځواب دې.حاصل د ځواب دادې.چه تزكيه د علة العلة په معنى كې ده.لكه څنگه چې وړاندې تيرشو.او احصان يعنى د زانى محصن كيدل د رجم لپاره شرط دې.او علة العلة نه دې.ځكه چې دحد زنا علت زنا ده.او د احصان گواهان زنا نه ثابتوى.ځكه چې زنا خو د احصان نه وړاندې ثابت شوې ده.نو هركله چې د احصان گواهان زنا نه ثابتوى.نو احصان به د حد زنا يعنى د رجم لپاره د علة العلة په معنى كې هم نه وى.او هركله چې احصان د علة العلة په معنى كې نه دې.او تزكيه د علة العلة په معنى كې ده.نو ددې په توپير په موجودگئ كې تزكيه په احصان باندې او تزكيه كونكى په شهود احصان باندې قياس كول هم صحيح نه وى.

## د گواهانو د يمين او د شرط د وجود گواهئ نه په رجوع كولو د ضمان حكم

وَإِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ بِالْيَمِيْنِ او كه دوې (دوه) گواهانو د يمين گواهى وركړله وَشَاهِدَانِ بِوُجُوْدِ الشَّرْطِ او دوې (دوه) گواهانو د وجود شرط گواهى وركړله. ثُمَّ رَجَعُوْا بيا څلور واړه گواهانو رجوع اوكړله.

تشريح:- صورت د مسئلې دادې.چه دوې (دوه) سړو د يمين عتاق گواهى وركړله.مثلاً دا گواهى نې وركړله.چه خالد خپل غلام ته ،،ان دخلت هذه الدار فانت حر،، وئيلى دى.يا يې د يمين طلاق قبل الدخول گواهى وركړله.مثلاً وې وئيل.چه خالد د خول نه وړاندې خپلې ښځې ته ،،ان دخلت هذه الدار فانت طالق،، وئيلى دى.بيا نورو گواهانو د وجود شرط گواهى وركړله.يعنى ددې خبرې گواهى نې وركړله.چه غلام يا ښځه په كور كې داخل شوى دى.نو قاضى د غلام آزادولو، يا د ښځې د مطلقه كيدلو فيصله وركړله.بيا څلور واړه گواهانو د خپلې گواهئ نه رجوع اوكړله.

فَالضَّمَانُ عَلَى شُهُوْدِ الْيَمِيْنِ خَاصَّةً نو ضمان به خاص طور باندې شهود يمين باندې واجب وى.

تشريح:- نود غلام د قيمت يا د نصف مهر ضمان به خاص طور باندې د يمين په گواهانو باندې واجب وى.يعنى خالد لپاره به ضمان هغه گواهانو باندې واجب وى.چاچه دا گواهى وركړې وه.چه خالد خپل غلام ته ،،ان دخلت هذه الدار فانت حر،، يا خپلې غيرمدخول بها ښځې ته ،،ان دخلت هذه الدار فانت طالق،، وئيلى دى.او كومو گواهانو چې داگواهى وركړې وه.چه د دخول دارشرط موجود شوې دې.په هغوى به ضمان واجب نه وى.

لِأَنَّهُ هُوَ السَّبَبُ، دليل دا دې چې دوى سبب دى. وَالتَّلَفُ يُضَافُ إِلَى مُثْبِتِي السَّبَبِ دُوْنَ الشَّرْطِ الْمَحْضِ او تلف كول سبب ثابتونكو اړخ اړخ ته منسوب كيږى.د شرط محض ثابتونكو اړخ ته نه منسوب كيږى.

تشريح:- دليل دادې.چه د غلام د آزادئ او د ښځې د طلاق سبب هم دا يمين دې.يعنى ،،انت حر،، او ،،انت طالق،، كوم چې په دخول دار باندې معلق دې.هم دا د غلام آزادولو او د ښځې د مطلقه كيدلو سبب دې.

أَلَا تَرَى أَنَّ الْقَاضِىْ يَقْضِىْ بِشَهَادَةِ الْيَمِيْنِ آيا نه گورې چې قاضى په شهادت يمين باندې فيصله وركوى. دُوْنَ شُهُوْدِ الشَّرْطِ په شهود شرط باندې فيصله نه وركوى.

تشريح:- هم دا وجه ده.چه قاضى د مولا د قول ،،انت حر،، په ذريعه شهادت ثابتيدلو په وجه د آزادئ فيصله كوى.او د ميړه قول ،،انت طالق،، ثابتيدلو په وجه د طلاق فيصله كوى.بهرحال د آزادئ او د طلاق سبب يمين عتاق او يمين طلاق دې.او دخول دار ددې د وقوع صرف شرط دې.او تلف كول سبب اړخ ته منسوب كيږى.شرط اړخ ته نه منسوب كيږى.ځكه چې كوم وخته پورې سبب اړخ ته حكم منسوب كول ممكن وى.هغه وخته پورې شرط اړخ ته رجوع نشى كولې.نو هركله چې تلف كول سبب اړخ ته منسوب كيږى.نو دلته كې غلام يا نصف مهر تلف كول به هغه گواهانو اړخ ته منسوب وى.چاچه پخپلې گواهئ سره سبب ثابت كړې دې.او هغه گواهانو اړخ ته به نه منسوب كيږى.چاچه صرف شرط ثابت كړې دې.اوهركله چې تلف كول د يمين (سبب) ثابتونكو گواهانو اړخ ته

منسوب دی.نو د رجوع کاوه په صورت کي به ضمان هم په دوی باندې واجب وی.د وجود شرط یعنی د دخول دار ګواهي ورکونکو باندې به ضمان واجب نه وی.

**وَلَوْرَجَعَ شُهُودُ الشَّرْطِ وَحْدَهُمْ** او که یواځې شهود شرط رجوع اوکړله. **اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيهِ** نو په دې کي مشائخو اختلاف کړي دي.

**تشریح:** - علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.که صرف شهود شرط رجوع اوکړله.نو د عالمانو اختلاف دې.د بعضو عالمانو خیال دې.چه په دې صورت کي د وجود شرط ګواهي ورکونکي ګواهان به ضامن وی.خو صحیح قول دادې.چه په دې صورت کي به هم ضامن نه وی.

**وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ يَمِينُ الْعَتَاقِ وَالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ** او د مسئلې معنی د یمین عتاق او یمین طلاق قبل الدخول ده.

**تشریح:** - علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د مسئلې مطلب یمین طلاق قبل الدخول دې.خادم ( مصنف اشرف الهدایه رحمه الله) د مسئلې په صورت کي د دواړو لحاظ ساتلې دې.په یمین طلاق کي د قبل الدخول قید ځکه ذکر دی.که بعد الدخول د یمین طلاق ګواهي نې ورکړله.نو د رجوع کاوه په صورت کي به ګواهان د مهر ضامن نه وی.ځکه چې د دخول په وجه میړه باندې مهر واجب شوې دې.که هغه طلاق ورکړی.او که ورنکړی.او هرکله چې میړه باندې د دخول په وجه مهر واجب شوې دې.نو ګواهانو د خپلې ګواهۍ په ذریعه هیڅ شی نه دې تلف کړې.او هرکله چې ګواهانو څه شی نه دې تلف کړې.نو په دوی به ضمان هم واجب نه وی.

**تمت بالخیر**



**كتاب البیوع** ...... ۳



**باب خیار الشرط** ...... ۴۷

فهرس

## مسائل منثوره ۳۸۱



## کتاب الصرف ........ ۳۹۷







## کتاب الکفالة ........ ۴۳۱

Scanned with CamScanner

[اچور (حمله)
[اچم (چل)
(ح)
[احکمي مرداري (حکمي نجاست)
(خ)
[اخلګ (خلق)
[اخلګو (خلقو)
[اخپاره (خواره)
(د)
[ادغه ډول (دغه شان)
[اد عمل ور (د عمل وړ)
[ادرلودی (لرلو)
[ادریم (دریم)
(ر)
[اراسته (ښي)
[اراتګ (راتلل)
(ز)
[ازمور (موږ)
[ازیږیدل (پیدائش)
(ږ)
[اږمور (موږ)
[اږیږیدل (پیدائش)
[اږباړي (ترجمې)
[اږباړه (ترجمه)
[اږي (مشکیزه)
[اږوول (جوئیل)
[اږي (مشکیزه)
(س)
[اسهار (صبا)
[اساتنه (حفاظت)
[اسربیره (دپاسه)
[اسراج (ډیوه)
[اسلواغه (بوقه)
[اساعتونه (لمحات)
[اساعت (لحمه)
[اسراج (ډیوه)
[اسپرلئ (سورلئ)

[اپیوسته (مسلسل)
[اپیشی (پیشو)
[اپیشلمی (پیشمنې)
[اپور (قرض)
[اپوست (پوستکي)
[اپور (قرضې)
[اپوولې (څرولې)
[اپښو (خپو)
[اپښي (خپې)
[اپوول (څرول)
[اپلنډه (تان)
[اپریښودې (پریخودې)
(ت)
[اتوانګر (مالدار)
[اتوپیر (فرق)
[اتوپیر (توپیر (تبدیلي)
[اتیخرګ (ترخ)
[اتوان (طاقت)
[اتوپیر (تبدیلي)
(ټ)
[اټوک (جلد)
(ټ)
[اټوک (جلد)
(ج)
[اجلا (جدا)
[اجلا جلا (جدا جدا)
(چ)
[اچوپوالي (خاموشي)
[اچپه (ګس)
[اچوپ (چپ)
[اچم (چل)
[اچنګوښه (چینډخ)
[اچوغکه (مرغۍ)
[اچتلي (ګندګی)
[اچمپلان (څپلئ)
[اچاغه (تیاره)
[اچمپلان (څپلئ)

[املا (وجي)
[ارخ (طرف)
[انډیوال (ملګری)
[اوپریمنځل (اووینځل)
[ارتیا (ضرورت)
[اړه (باره)
[الغه (حلقه)
[اخته (مبتلا)
[انډیوالان (ملګری)
[ایله کړي (پرانستي)
[انا (نیا)
[اکا (تره)
[اونه کی (اونکړی)
(ب)
[ابرخو (حصو)
[ابرخه (حصه)
[ابیرغ (جنډا)
[ابلا ناغه (پرله پسي)
[ابایده ده (پکار ده)
[ابوخت (مشغول)
[ابولي (متیازي)
[ابازي (لوبي)
[ابي غوری (کوتاهی)
[ابوق (قب)
[ابته (مته)
[ابندی خانه (جیلخانه)
(پ)
[اپاته (باقی)
[اپیل (شروع)
[اپوښتنه (تپوس)
[اپه عامه توګه (عام طور)
[اپریښولو (پریخودلو)
[اپاته (باقی)
[اپریښول (پریخودل)
[اپریښولو (پریخودلو)
[اپزه (پوزه)
[اپر (په)
[اپریښولو (پریښولو)

[مخکه (زمکه)
(ن)
[نښانه (نښه)
[نجوني (نجوني (جینکۍ))
[نفر (کسان)
[نښلیدل (لګیدل)
[ناړې (لیاړې)
[نښتیزل (نچوړول)
[نژدې (نیزدې)
[نومول (نامدار)
(و)
[ویش (تقسیم)
[واره (ټول)
[وزه (چیلۍ)
[ولاړ شه (لاړ شه)
[ورون (پتون)
[ورونان (پتونان)
[ور کولای شی (کولې شی)
[ور کولاې (کولې)
[وپلوری (خرخه کړی)
[ویاله (نهر)
(ه)
[هسکې (پچې)
[هنداره (شیشه)

[کولای شی (کولې شی)
[کوټ (خیرې)
[کوځیو (کونسۍ)
[کښتۍ (کشتۍ)
[کونجته (کونځله)
[کولاې (کولې)
[کرار کرار (مزه مزه))
(ګ)
[ګډ (شامل)
[ګونډۍ (کونډۍ)
[ګوله (نمړۍ)
[ګښتونه (چکرونه)
[ګټور (ګتور (فائده مند))
[ګټور (فائده مند)
[ګرځ (ګرد)
(ل)
[لنډیز (خلاصه)
[لمر (نمر)
[لینګۍ (پنډۍ)
[لنګوټې (پټکی)
[لږترلږ (کم ازکم)
[لویدیځ (مغرب)
[لاستي (لاسکې)
[لوټه (کوزه)
[لاچاری (مجبوری)
(م)
[مهال (دوران)
[ماپښین (ماسپخین)
[میړه (خاوند)
[مسبوق (خلیفه)
[مرداری (پلیتی)
[منځنی (درمیانه)
[مسافه (مسافت)
[مولښتی (پیوست))
[مچی کول (ښکلول)
[منډې (میاندې)
[مړینه (مړکیدل)
[منګوړ (کتمل)

[سرپټ (سرپوښ)
[سرکښه (سرکشه)
[ساعت (لمحه)
[سپهسي (مزې)
(ش)
[شی (څیز)
[شیان (شیان (څګیزونه))
[شرموښ (شرمخ)
[شاګر (شاګرد)
[شتمن (مالدارن)
[شتمن (مالدارن)
(ص)
[صحرائی (بانډیچی)
[صندخ (صندوق)
(ط)
[طرفه (اړخه)
(ع)
[عکس (تصویر)
[عجلی (تیزی)
(ف)
[فرش (قالین)
(ق)
[فرش (قالین)
[قرضونه (پوررونه)
[قلف (تاله)
(ک)
[کوښښ (کوشش)
[کاوه (کولو)
[کیداې (کیدې)
[کومك (مدد)
[کښته (ښکته)
[کښینستل (کیناستل)
[کالی (جامه)
[کوځیو (کونسۍ)
[کشور (شمشتۍ)
[کوځیو (کوځو)
[کښت (پټې)
[کشف (شمشتۍ)